| عنوانات | صفحه نمبر |
|---|---|
| جنت ته به اول دري قسمه خلق ځي:: | ۶۹۵ |
| د جهاديانو فضيلت:: | ۶۹۶ |
| د خرابوبنديگانو صفتونه:- | ۶۹۶ |
| د دنيا حقيقت:- | ۶۹۷ |
| جنتيان په نازونو نعمتونوکښې: | ۶۹۸ |
| د د طوبى تفصل اودهغې متعلق حديثونه:: | ۶۹۹ |
| جنت د تکليف ا ومشقت نه بلکه د آرام او مزو :خانې دې:: | ۷۰۰ |
| د ادنى جنتي جنت:: | ۷۰۱ |
| د آقا ﷺ حوصله افزائى:- | ۷۰۲ |
| د قرآن کريم صفات جليله:- | ۷۰۳ |
| د قرآن پاك أطلاق په مخکښې کتابونو کښې هم کيږي:: | ۷۰۴ |
| دوړاندينو انبياء کرامو معجزې ه هغوئ سره ختمې شوې خو قرآن پاك آبدى دې:: | ۷۰۴ |
| د تحل قريب نه څه مراد دى ؟:: | ۷۰۴ |
| د انبياو سره د ټوقوکولونه باوجود بياهم مهلت ملاوشو:- | ۷۰۵ |
| عالم ماکان او ومايکون هم د | ۷۰۶ |
| د مشرکانو د شرك هيڅ حقيقت نشته: | ۷۰۶ |
| د دوزخ عذاب اود جنت نظارې:- | ۷۰۷ |
| په مونځ کښې رسول ﷺ ته جنت او جهنم ښکاره شول:: | ۷۰۸ |
| د جنت د ميوؤ غټوالى:: | ۷۰۸ |
| جنت کښې به بول و براز نه وى:: | ۷۰۸ |
| دجنت به هر څه هميشه وى:: | ۷۰۹ |
| د قرآن د نازليدلو سره خوشحاليدونکى خلق:- | ۷۱۰ |
| دې آيت مبارك کښې د ټولو علماء کرامو ته وعيد دې:: | ۷۱۰ |
| د معجزو صادر کيدل د رسولانو په اختيارکښې نه دى:: | ۷۱۱ |
| د نيك بختى او بد بختى کتاب نه بدليږى دې مطلبونه:: | ۷۱۱ |
| د نبى په ذمه تبليغ او حساب د | ۷۱۳ |
| د کافرانو تدبيرونه ناکام د الله ﷻ اراده کامياب:- | ۷۱۴ |
| د رسالت او نبوت منکر:- | ۷۱۵ |
| د عبدالله بن سلام د ايمان قصه:: | ۷۱۵ |
| مومن په رنړاکښې اوکافرپه تياروکښې:- | ۷۱۷ |
| هر يو نبى د هغه په قومى ژبه کښې ليږلې شى | ۷۱۷ |
| د نبى آخر نبوت عام دې:: | ۷۱۸ |
| حضرت موسى ﷺ د بنى اسرائيلو طرف ته:- | ۷۱۸ |
| ښه بنده هغه دې چې مصيبت کښې صبر اوکړى:: | ۷۱۹ |
| په بنى اسرائيلو د الله ﷻ احسانات:- | ۷۲۰ |
| انسان د گناه په وجه د رزق نه محرومولې شى:: | ۷۲۰ |

| عنوانات | صفحه نمبر |
| --- | --- |
| دموسىؑ بنى اسرائيلوته وعظ:- | ۷۲۱ |
| د لاس په خلو کښې د وا پس کولو څه مطلب دې:: | ۷۲۲ |
| د قوم په غلطوکارونو د انبياوٗ په الله باندې توکل: | ۷۲۳ |
| اکثر امتونه دخالق د وجود قائل وو خو:: | ۷۲۳ |
| مشرکانو په انسانيت درسالت منافى گڼلو:: | ۷۲۴ |
| د کافرانو خپلو رسولانو ته دهمکياني: | ۷۲۵ |
| د کافرانو دهمکياني خاورو سره خاورې شوې:: | ۷۲۵ |
| د دوزخيانو خوراك او ددوى حالت:: | ۷۲۶ |
| د بې فائدې عمل مثال: | ۷۲۷ |
| خپلې نيکۍ په زباتولوسره ندى بربادول پکار:: | ۷۲۸ |
| د کائناتو رنگ او بوئى خالق:- | ۷۲۸ |
| په محشر کښې د تابعانو او متبوعانو خبرې اترې: | ۷۲۹ |
| د دوزخيانو زارئى او فرياد:: | ۷۳۰ |
| په دوزخ کښې د شيطان خطاب:- | ۷۳۱ |
| قيامت کښې د دوؤ کسانو خطاب:: | ۷۳۲ |
| کلمه طيبه او شجره طيبه: | ۷۳۳ |
| دشجرة طيبة نه مراد دکهجورې ونه ده: | ۷۳۴ |
| کلمة خبيثة او شجرة خبيثة: | ۷۳۴ |
| دقبر سوال جواب او عذاب او ثواب: | ۷۳۵ |
| دمؤمن دروح وتلو کيفيت:: | ۷۳۵ |
| دکافر د روح وتلو کيفيت:: | ۷۳۶ |
| ددې امت به په قبرونو کښې آزميښت کولې شى:: | ۷۳۷ |
| مؤمن ته به د روح وتلو په وخت کښې فرښتې پخير راغلې وائى:: | ۷۳۷ |
| د مؤمن روحك درېښمو په کپړو کښې اوړى:: | ۷۳۸ |
| د کافر روح زمکه کښې لاندې غورځولې کيږى :: | ۷۳۸ |
| په قبر کښې د منافق جواب:: | ۷۳۸ |
| په قبر کښې مونځ روژې زکوة وغيره هم د انسان حفاظت کوى:: | ۷۳۹ |
| آسمان ته دنوى ختلى روح سره نور روحونه ملاقات کوى:: | ۷۳۹ |
| فرښتې مؤمن ته سلام کوى او جنازه کښې شرکت کوى:: | ۷۳۹ |
| د مؤمن هر عمل که غټ وى او که وړوکې د عذاب قبر نه خلاصوى:: | ۷۴۰ |
| د روح ويستلو په وخت فرښتې په مؤمن ډيرې مهربانې وى:: | ۷۴۱ |
| د مؤمن په مرگ باندې فرښتې آسمان او زمکه هم ژړا کوى:: | ۷۴۱ |
| د مؤمن په کاميابۍ شيطان دافسوس ژړا کوى:: | ۷۴۱ |
| مؤمن ته به جنت او دوزخ دواړه اوخودلې شى:: | ۷۴۲ |
| دکافرو روح به په بدبوداره گنده کپړه کښې ويستلې شى :: | ۷۴۲ |
| د نعمت د ناقدرئى سزااو د | ۷۴۴ |

| عنوانات | صفحه نمبر |
|---|---|
| د الله ﷻ نعمتونه او دهغې ناشكرى:- | ۷۴۷ |
| د شكر پوره ادا كولو طريقه:: | ۷۴۷ |
| د مكې د پاره د امن دعا:- | ۷۴۸ |
| رسول ﷺ دې آيتونو لوستلو سره امت دپاره ژړل:: | ۷۴۹ |
| د ابراهيم ﷺ د ميوود زياتوالى دعا: | ۷۴۹ |
| د حضرت ابراهيم ﷺ يوه بله دعا: | ۷۵۱ |
| دقيامت په ورځ دنياته واپس تلل نامنظور | ۷۵۲ |
| د نمرود يوه قصه:: | ۷۵۳ |
| د قيامت په ورځ به زمكه او أسمانونه بدلولې شى: | ۷۵۴ |
| د يهودى عالم سوالونه اودهغې جوابونه:: | ۷۵۴ |
| دقيامت د زمكې كيفيت:: | ۷۵۵ |
| دوزخيان به د ګوګړو په جاموكښې قيد وى: | ۷۵۶ |
| دې امت كښې د جاهليت څلور كارونه:: | ۷۵۷ |
| قرآن د دنيا په وړاندې يو ښكاره پيغام:- | ۷۵۷ |

| وَلَوْ اَنَّنَا | نَزَّلْنَآ | اِلَيْهِمُ | الْمَلٰٓئِكَةَ | وَكَلَّمَهُمُ | الْمَوْتٰى |
|---|---|---|---|---|---|
| اوکه بیشکه مونږه | نازل کړي وي مونږه | دوی ته | فرښتې | اوخبرې کړې وې دوی سره | مړو |
| اوکه مونږ دوی ته فرښتې هم رالیږلې وې \| اودوی سره مړو خبرې هم کړې وې | | | | | |

| وَحَشَرْنَا | عَلَيْهِمْ | كُلَّ شَيْءٍ | قُبُلًا | مَّا كَانُوْا | لِيُؤْمِنُوْٓا | اِلَّآ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوجمع کړې وې مونږه | دوی ته | هر څیز | مخامخ | نه وو دوی | چې ایمان نې راوړې وې | مګر |
| اومونږ (ددنیا) ټول څیزونه ددوی مخکښې راجمع کړې وې \| خوبیاهم دوی ایمان نه قبلولو \| خو | | | | | | |

| اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ | وَلٰكِنَّ | اَكْثَرَهُمْ | يَجْهَلُوْنَ |
|---|---|---|---|
| داچې \| اوغواړي الله | ولیکن | اکثر ددوی نه | دناپوهتیاخبرې کوی |
| هله که الله ﷻ غوښتلې (چې ایمان دې راوړي) \| خوېه دوی کښې زیات خلق نه پوهیږي | | | |

**قوله تعالیٰ: مَا كَانُوْا لِيُؤْمِنُوْٓا**

**کافران دحق په پیژندلوهم ایمان نه راوړي:-** الله ﷻ فرمائی که چرې مونږددې خلقو سوال پوره هم کړو کوم چه قسمونه خوړلوسره داوائی چه که مونږ له څه نښه راشی نو خامخابه ایمان راوړو.اوکه بیا مونږ په دوی باندې فرښتې هم نازلې کړو چه درسولانو تصدیق او ستاد رسالت ګواهی ورکړی نو بیا به هم دوی ایمان نه راوړي.لکه څنګه چه هغوی وائی چه ته الله ﷻ اوفرښتې راوړه اواوښایه او مونږ خو ترهغه وخته پورې ایمان نه راوړو چه دنوروړسولانوپه شان ته هم نښې پیش کړې.اودچاچه زمونږ سره د مخامخ کیدوهیڅ یقین نشته داوائی چه په مونږباندې فرښتې ولې نه دی نازلې کړې شوې اوچه الله ﷻ مونږ لیدلې وې.داسې خلق په ډیره سرکشئی او دښمنئی کښې دی([1])اوکه فرښتې هم راشی او هغوی سره خبرې اوکړی اودرسولانوتصدیق اوکړی اودهرڅیز ذخیره هغوی له راوړی اوجمع نې کړی(نو بیا به هم دهغوی په زړونوباندې څه اثرنه وی).په( قُبُلًا) بعضو( قِبَلًا)دقاف په کسره اودیاپه فتحه سره لوستلې دې دکوم معنې چه دمقابلې اومعائنې ده اوبعضو دواړه حرفونه په پیښ سره لوستلی دی د څه په سبب چه معنی شوه ډلې ډلې خلق که هم راشی او د رسول ﷺ تصدیق اوکړی نو بیا هم ایمان نه راوړی. هدایت ورکول صرف د الله ﷻ کاردې که خومره خلق ولې نه وی خو دوی ته هدایت نه شی کولې. هغه چه څه غواړی نو کوی هغه به د ټولو نه تپوس کوی خو د هغه نه تپوس نه شې کیدلې. لکه چه فرمائی هغه خلق په چا چه د الله ﷻ خبره پوره شوې ده هغوی به هیڅ کله ایمان نه راوړی که هغوی هر څومره نښې ولې اونه ګوری. دردناك عذاب به ئې راګیرکړی نو د هغوی سترګې به کولاؤ شی.([2])

| وَكَذٰلِكَ | جَعَلْنَا | لِكُلِّ نَبِيٍّ | عَدُوًّا | شَيٰطِيْنَ الْاِنْسِ | وَالْجِنِّ | يُوْحِيْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اودارنګې \| جوړکړی دی مونږه \| دپاره | دهرنبي | دشمنان | شیطانان دانسانانو | اودپیریانو | چې وسوسه اچوی |
| اوداشان مونږ د هریوپیغمبردپاره بنی ادمواودپیریانو شیطانانو نه دشمنان ګرځولی دی \| چې یوبل ته | | | | | | |

| بَعْضُهُمْ | اِلٰى بَعْضٍ | زُخْرُفَ | الْقَوْلِ | غُرُوْرًا | وَلَوْ شَآءَ |
|---|---|---|---|---|---|
| خینی ددوی نه | خینو ته | ښانسته کړی شوی | خبرې | دپاره ددوکې | اوکه غوښتلې |
| د دهوکې او فریب خوړې پستې خبرې کوی \| .......................... اوکه چرته ستا ................. | | | | | |

---

[1] الفرقان ۲۵/۲۱.

[2] یونس ۱۰/ ۹۶.

رَبُّكَ مَا فَعَلُوْهُ فَذَرْهُمْ وَمَا يَفْتَرُوْنَ۝

رب ستا | نهٔ به وؤ کړې دوئ دا کار | نو پرېږده دوئ | اوهغه | اچې دوئ ئې جوړوی دخانه |

رب غوښتلې نو دوئ به کار نشوکولې| نودوئ پرېږده |اوددوی د خان نه جوړ شوې دروغ هم پرېږده

وَلِتَصْغٰى اِلَيْهِ اَفْـِٕدَةُ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ

اودپاره ددې چې میلان اوکړی | دې ته | زړونه | دهغه کسانو | چې نهٔ راوړی ایمان|په آخرت باندې

؛اوددې خبرومهلت ځکه ورکوو؛چې دهغې کسانو زړونه ورته مائل شی|چې په آخرت باندې ایمان لری

وَلِيَرْضَوْهُ وَلِيَقْتَرِفُوْا مَا هُمْ

اودپاره ددې چې خوښ کړی دوئ دادروغ|اودپاره ددې چې اوکړی | هغه ګناهونه| چې دوئ

اوچې ښه ئې خوښ کړی|اوچې هغه ؛ګناهونه اوکړی؛ کوم چې دوئ کول غواړی

مُّقْتَرِفُوْنَ۝

کونکی دی دهغې |

قوله تعالی: وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِيٍّ عَدُوًّا

**دهرنبی دښمنان وی الله ﷻ دنبی ﷺ حوصله افزائی فرمائیلې ده**:-ارشاد دې چه اې محمد (ﷺ)!لکه ځنګه چه ستامخالفین او دښمنان دی دهرنبی دغه شان معاندین اودښمنان تیرشوی دی پدې وجه ته د هغوی په مخالفت باندې خفګان مه کوه.اوفرمائی تانه وړاندې انبیاءکرامو په تکذیب اوتکلیف رسولو باندې صبرکړې وو([1])او اوفرمائیلې شوداخلق چه تاته وائی مخکینو رسولانوته هم داوئیلې شوې دی. الله ﷻ بخښونکې هم دې اوسخت عذاب ورکونکې هم دې.اوفرمائی چه دغه شان مونږ د هر نبی دپاره دښمنان جوړکړې وو([2])ورقه بن نوفل رسول الله ﷺ ته وئیلې ووای محمد (ﷺ)!داقریش به تاسره دښمنی هم کوی اوچه کوم یونبی هم ستا په شان خبرې خپل امت ته کړی دی هغوی سره ئې هم دښمنی کړې ده ارشاد دې(شَيٰطِيْنَ الْاِنْسِ وَالْجِنِّ )دابدل دې او(عدوا)مبدل منه دې.یعنی دهغوی دښمنان انسی اوجنی شیطانان دی اوشیطان هر هغه دې چه په شرکښې خپل مثال نه لری اودې رسولانوسره به ددې شیطانانونه علاوه بل څوك دښمنی اوکړی چه هم د دوی د نوع نه دی. ([3])

**د پیریانو پشان انسانانو کښې هم شیطانان وی** :: قتاده رحمه الله فرمائی چه پیریانوکښې هم شیطانان دی او په انسانانوکښې هم دی چه خپلوخپلو خلقو ته دګناه تلقین کوی.ابوذر ؓ یو ورځ مونځ کولو نو حضور ﷺ ورته اوفرمائیل اې ابوذر ؓ!دانسی اوجنی شیطانانونه اعوذبالله اولوله نوابوذر ؓ اوفرمائیل چه آیا په انسانانو کښې هم شیطانان وی؟ نو حضور ﷺ اوفرمائیل چه او وی. د حضرت ابوذر ؓ نه په یو بل روایت کښې مروی دی چه زه حضرت محمد ﷺ له راغلم نو مجلس اوږد شو نوحضور ﷺ اوفرمائیل ابوذر ؓ آیا تامونځ کړې دې؟ ماوئیل نه یارسول الله ﷺ. حضور ﷺ اوفرمائیل پاسه او دوه رکعته مونځ اوکړه.زه حضور ﷺ له نیزدې راغلم او مونځ مې کولو نو وئی فرمائیل آیا تا د انسی اوجنی

[1]) الانعام۶\۳٤.

[2]) الفرقان۲۵\ ۳۱.

[3]) صحیح بخاری کتاب بدء الوحی، باب کیف کان بدءالوحی الی رسول الله :۳، صحیح مسلم: ۱۶۰، احمد:۲/۲۳۲، ابن حبان: ۳۳، دلائل النبوه: ۲/۱۳۵.

شیطانانونه اعوذبالله کړې ده؟مااوونیل یارسول الله ﷺ ولې په انسانانوکښې هم شیطانان وی؟ حضور ﷺ اوفرمائیل او دا د پیریانو شیطانانونه ډیر شریان وی. (١)

**انسی شیطانان جنی شیطانانوته وحی کول:** عکرمه رضی الله عنه فرمائی چه پیریان شیطانان دانسانانو شیطانانو طرف ته وحی راوړی اودا شان انسانی شیطانان پیریانوشیطانانوته.لکه د الله تعالی فرمان دې ﴿يُوحِي بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ زُخْرُفَ الْقَوْلِ غُرُورًا﴾ عکرمه رضی الله عنه اوفرمائیل چه په انسانانوکښې هم شیطانان وی او پیریانوکښې هم. اوس انسانی شیطانان په جنی شیطانانو باندې القاء کوی. دوی کښې بعضې بعضو ته د خرابو خبرو وحی کوی.عکرمه رضی الله عنه اوفرمائیل چه انسانی شیطانان هغه دی کوم چه انسانانوته دګناه مشورې ورکوی. او د پیریانو شیطانان پیریان ګمراه کوی. هر یو خپل ملګری ته وائی چه ماخو خپل ملګرې واړولو ته هم دغه شان خپل ملګرې د سمې لار نه واړوه. دغه شان یو بل ته د ګناه تعلیم ورکوی. د دې نه ابن جریر رحمه الله دامطلب اخستې دې چه د عکرمه رضی الله عنه اوسدی رحمه الله په نیزد انسی شیطانانونه هغه پیریان شیطانان مراددی کوم چه انسانان غولوی. دا مراد نه دې چه انسی شیطانان هم په انسانانو کښې دننه دی. او په دې کښې شك نشته چه د عکرمه رضی الله عنه د کلام نه هم دا ظاهرېږی خو د سدی رحمه الله کلام د دې معنې حامل نه دې سره د دې چه د دې احتمال وی.

دضحاك رحمه الله په روایت کښې دی چه په پیریانوکښې هم شیطانان شته چه هغوی ګمراه کوی لکه څنګه چه انسی شیطانان دانسانانود ګمراه کولو سبب جوړېږی.اوس انسانی شیطانان پیریانو شیطانانو سزه یو ځائ کیږی او وائی چه دوی په دې سره دهوکه کړه او داسې نی دهوکه کړه لکه چه د الله تعالی قول دې ﴿يُوحِي بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ زُخْرُفَ الْقَوْلِ غُرُورًا﴾ بهر حال صحیح هغه دی کوم چه د ابی ذر رضی الله عنه په حدیث کښې تیر شو چه په انسانانوکښې هم انسی شیطانان دی اود هر څیز شیطان هم د هغه جنس سرکش دې. په صحیح مسلم کښې دحضرت ابوذر رضی الله عنه حدیث نقل دې چه رسول الله ﷺ فرمائیلی چه تورسپۍ شیطان وی (٢) د کوم معنی چه دا ده چه هغه په سپوکښې شیطان دې.

مجاهد رحمه الله د دې آیت په تفسیرکښې لیکلی دی چه د پیریانوکافران شیطانان هغه شیطانان دی کوم چه د انسی شیطانانو طرف ته وسوسې رالیږی او د انسانانو شیطانان کافر ان دی. د عکرمه رضی الله عنه نه روایت دې چه زه مختار له لاړم زما دمیلمستیا په شپه نې زه هم خان سره حصارکړم. بیائی ماته اوونیل چه د قوم طرف ته لاړشه هغوی ته حدیث واوروه. زه لاړم یو سړې زما مخې ته راغلو او ونې ونیل چه د وحی باره کښې ته څه وائې؟ ما اوونیل وحی په دوه قسمه وی الله تعالی فرمائیلی دی ﴿بِمَا أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ هَٰذَا الْقُرْآنَ﴾ یعنی دا قرآن مونږ ستا طرف ته وحی کړې ده او دائی هم فرمائیلی ﴿شَيَاطِينَ الْإِنسِ وَالْجِنِّ يُوحِي بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ زُخْرُفَ الْقَوْلِ غُرُورًا﴾ یعنی انسی اوجنی شیطانان خپلو خپلو خلقوته د خرابوخبرو وحی کوی لیکن په دې وینا کولو باندې هغوی په ماباندې حمله اوکړه او وهل ټکول نې غوښتل مااوونیل چه دا ته څه کوې زه خو تاته یوه خبره ښایم او ستا میلمه یم. غرض دا چه هغه زه پرېخودم.

عکرمه رضی الله عنه دا څیز په مختارباندې پیش کړې وو او هغه ابن ابی عبید دې الله تعالی دې هغه خراب کړی هغه داګمان کوی چه هغه له هم وحی راځی. د هغه خور صفیه د عبدالله بن عمر رضی الله عنه ښځه وه او نیکه ښځه وه، کله چه عبدالله بن عمر رضی الله عنه هغه خبرکړه چه مختار هم په خپل خان باندې د وحی راتلو دعوه کوی نو عکرمه رضی الله عنه اوفرمائیل چه الله تعالی رښتیا فرمائیلی دی چه شیطانان د خپلواولیاؤ طرف ته وحی

---

(١) الطبری:۱۲/۵۳ مسنداحمد:۱۷۸/۵، نسائی، کتاب الاستعاذه باب الاستعاذه من شر شیاطین الانس:۷/۵۵۰۹ حاکم: ۲۸۲/۲.

(٢) صحیح مسلم کتاب الصلاه باب قدر ما یستر المصلی: ۵۱۰ ابوداؤد: ۷۰۲ ترمذی:۳۳۸، ابن ماجه: ۹۵۲.

احمد:۱٤۹/۵، ابن حبان: ۲۳۷۵.



کوی یعنی دا ټول د الله ﷻ تقدیر د هغه رضا او اراده ده چه د هر نبی هم د هغه د خلقو نه یو دښمن وی نو اې نبی(ﷺ)! ته دوی ته معافی کوه او د هغوی د دې دروغو او ځان نه خبرو نه ډډه هم کوه د دوی د دښمنئی په باره کښې په الله ﷻ باندې توکل او یقین کوه هغه ستا د پاره کافی دی.

**دشیطان وحی ته کافر اوګمراه میلان کوی:**:اوداللهﷻ قول دې ﴿وَلِتَصْغٰٓى إِلَيْهِ﴾ یعنی دداسې شیطانانو طرف ته په آخرت باندې ایمان نه لرونکو زړه ټیټیږی اود هغوی دوستان جوړیږی او یو بل خوشحالوی لکه چه فرمائی ﴿فَإِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ ۝ مَآ أَنتُمْ عَلَيْهِ بِفَـٰتِنِينَ ۝ إِلَّا مَنْ هُوَ صَالِ ٱلْجَحِيمِ ۝﴾ اوفرمائی ﴿ إِنَّكُمْ لَفِى قَوْلٍ مُّخْتَلِفٍ ۝ يُؤْفَكُ عَنْهُ مَنْ أُفِكَ ۝﴾ اوونی فرمائیل ﴿وَلِيَقْتَرِفُوا۟ مَا هُم مُّقْتَرِفُونَ ۝﴾ که هغه شیطانان جوړیږی اودهوکه کوی اوخلق د هغوی طرف ته ورټیټیږی نو هغوی پریږده چه څه کوی هغه دې کوی.

| أَفَغَيْرَ ٱللَّهِ أَبْتَغِى حَكَمًا وَهُوَ ٱلَّذِىٓ |
|---|
| ایا نوبې دالله نه \| اولټوم زهٔ \| فیصله کونکې \| اوحال دا چې هغه \| هغه ذات دې |
| ایا زه دالله ﷻ نه بغیر بل څوک فیصله کونکې اولټوم \| او الله ﷻ هغه ذات دې چه |
| أَنزَلَ إِلَيْكُمُ ٱلْكِتَـٰبَ مُفَصَّلًا ۚ وَٱلَّذِينَ |
| چې نازل کړې ئې دې \| تاسوته \| دا کتاب \| ښه په تفصیل سره \| اوهغه کسان |
| دېرپه تفصیل سره ئې دا کتاب تاسوته نازل کړې دې \| ..........او هغه کسان چې |
| ءَاتَيْنَـٰهُمُ ٱلْكِتَـٰبَ يَعْلَمُونَ أَنَّهُۥ مُنَزَّلٌ |
| چې ورکړې وژمونږه هغوئ ته \| کتاب \| هغوئ پوهیږی \| په دې چې بیشکه داقرآن \| نازل کړې شوې دې |
| مونږورته ددې نه مخکښې کتاب ورکړې وو \| هغوئ ته ښه معلومه ده چې دا کتاب |
| مِّن رَّبِّكَ بِٱلْحَقِّ ۖ فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ ٱلْمُمْتَرِينَ ۝ وَتَمَّتْ |
| د طرفه درب ستا نه \| دحق سره \| پس مهٔ کیږه ته خامخا \| دشک کونکو نه \| اوتمامه شوی ده |
| ستا د رب دطرفه په حقه راغلې دې \| نو ته د شک کونکو څنې مه کیږه \| ..او د رب خبره ........ |
| كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدْقًا وَعَدْلًا ۚ لَّا مُبَدِّلَ |
| خبره \| درب ستا \| په لحاظ دربښتنوالئ سره \| اوپه لحاظ دانصاف سره \| نشته څوک بدلونکې |
| په انصاف اورشتینوالی سره پوره شوې ده \| ..........هیڅوک دهغه |
| لِكَلِمَـٰتِهِۦ ۚ وَهُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ ۝ |
| فرمانونودهغه لره \| اوهغه \| اوریدونکې دې \| خبردار دې \| |
| حکمونه بدلولې نشې \| اوهغه هرڅه آوری او په هرڅه پوهیږی \| |

**قوله تعالی::**وَهُوَ ٱلَّذِىٓ أَنزَلَ إِلَيْكُمُ ٱلْكِتَـٰبَ مُفَصَّلًا ۚ

**د الله ﷻ قرآن قول فیصل دې**:-فرمائی چه اې نبی(ﷺ)! دې مشرکانو ته اووایه چه زه د خپل ځان او ستاسو په مینځ کښې د الله ﷻ نه علاوه بل څوک فیصله کونکې اوګرځوم؟ سره د دې چه هغه ستاسو طرف ته یو تفصیلی کتاب نازل کړې دې او صرف په تاسو نه بلکه دا کتاب ئې د اهل کتابود پاره هم نازل کړې اودا یهوداو نصاری ټول پیژنی چه دا په حقیقت کښې هم د الله ﷻ د طرف نه نازل شوې دې

ځکه چه ستاسو په باره کښې د هغوی په کتابونوکښې د پخوانو انبياءکرامو بشارتونه او زيری موجود دی. نو ته په شك كښې مه پريوزه([1]) لكه چه فرمائی مونږ ستا طرف ته څه نازل کړی که د هغې نه ته په شك كښې نی نو د هغه خلقو نه تپوس اوکړه کوم چه اهل کتاب دی. ستا د طرف ته راغلې وحی بالکل حقه ده نوته په شك كښې مه پريوزه. دا آيت د شرط په توګه دې او دا ضروری نه دی چه شرط دې واقع کيږی هم.ددې وجې حضورﷺ فرمائيلی چه زه نه شك كوم اونه دتپوس كولو ضرورت شته.([2])

**د الله ﷻ هر حكم كامل او د عدل وی:** د الله ﷻ قول دی﴿وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدْقًا وَّعَدْلًا﴾ستادرب خبره په رښتياؤ او په عدل ختميږی څه چه هغه فرمائی هغه حق امر دی. په امر حق کيدوکښې هيڅ شك نه شی کيدې او د کوم څيز چه هغه حکم ورکوی هغه دعدل نه علاوه نورهيڅ هم نه دی. هغه چه د کومې خبرې نه منع کوی هغه باطله خبره وی اودشرنه ډك څيز نه هغه منع کوی لکه چه فرمائی﴿يَأْمُرُهُمْ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهٰهُمْ عَنِ الْمُنْكَرِ لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمٰتِهٖ﴾ يعنی په دنيا او آخرت كښې د هغه احكام بدلونكی څوك نشته هغه د خپلو بنديګانو خبرې اوری د هغوی حرکاتو او سکناتو باندې پوهيږی اود هر عمل کونکی بدله هم د هغې مطابق ورکوی.

| وَاِنْ | تُطِعْ | اَكْثَرَ | مَنْ | فِي الْاَرْضِ | يُضِلُّوْكَ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوكه چرې | خبره اومنې ته | دزياتو | دهغه چا | اچې په زمكه كښې دی | انو بې لارې به کړی هغوی تالره |

| اوكه چرې ته دهغه خلقو د اكثريت تابعداری اوکړې اکوم چې په دې زمکه استوګن دی انوتابه دالله ﷻ |
|---|

| عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ | اِنْ يَّتَّبِعُوْنَ | اِلَّا | الظَّنَّ | وَاِنْ هُمْ | اِلَّا |
|---|---|---|---|---|---|
| دلارې دالله نه | انه کوی دوی پيروی | مګر | دګمان | اونه دی دوی | مګر |

| دلارې نه واړوی دوی خو صرف دګمانونو تابعداری کوی .......... اوتش |
|---|

| يَخْرُصُوْنَ ﴿۱۱۶﴾ | اِنَّ رَبَّكَ | هُوَ | اَعْلَمُ | مَنْ | يَّضِلُّ |
|---|---|---|---|---|---|
| تش قياسونه لګوی | بيشكه رب ستا | هغه | ابنه پوهيږی | په هغه چا | چې بې لارې دی |

| په اټكل پسې روان دی ابيشکه حقيقت كښې ستارب په هغه چا ښه عالم دې چې څوك دسمې لارې نه |
|---|

| عَنْ سَبِيْلِهٖ | وَهُوَ | اَعْلَمُ | بِالْمُهْتَدِيْنَ ﴿۱۱۷﴾ |
|---|---|---|---|
| دلارې دهغه نه | اوهغه | ابنه پوهه دی | په لاره موندونكو باندې |

| ګمراه دی او هغه ذات ته هغه څوك هم ښه معلوم دی چې څوك په سمه لار روان دی |
|---|

**قوله تعالى: وَاِنْ تُطِعْ اَكْثَرَ مَنْ فِي الْاَرْضِ**

**په دنياکښې ګمراه خلق ډير دی:**-فرمائی چه داكثرو بنيادمو حالات دګمراهئی نه ډك دی لكه چه فرمائی اولنو اکثروخلقو ګمراهی اختيارکړې وه([3]) اوفرمائی چه ته څومره هم غوښتنه اوکړې خواکثر خلق ايمان راوړونکی نه دی هغوی هم په ګمراهئی کښې دی([4])اوعجيبه دا چه پخپله هغوی په خپل عمل او کردار باندې يقين نه لری او هغوی په باطل ګمان کښې ګرځی. د خان نه خبرې جوړوی او په

[1]) يونس ١٠\١٠٣.
[2]) مصنف عبدالرزاق:١٢٦/٦، ح ١٢٠١١وفی التفسير:٢٦١/١.
[3]) الصافات٣٧\٧١.
[4]) يوسف١٢\١٠٣.

توهم پرستنې کښې راګير دی (يَخْرُصُوْنَ) دخرص معنی اټکل او اندازه ده "خرص النخل" وائی چه د ونو بوټو اندازه لګول. د الله ﷻ رضا او اندازه دا ده چه هغه د خپلې لارې نه اخواشوی ډير ښه پيژنی او په دې وجه اړول په هغه باندې ډير آسان دی او هدايت موندونکی هم ښه پيژنی اوپه هغوی باندې هم هدايت آسان جوړوی. د هريود پاره چه څه مناسب دی هم هغه په هغوی باندې آسانوی.

فَكُلُوْا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ

| نوخورئ | دهغې نه | چې يادشوې دی| نوم | دالله

انو دهغې ځاروونه خوراک کوئ چه دالله نوم پرې اخستې شوې وی

عَلَيْهِ اِنْ كُنْتُمْ بِاٰيٰتِهٖ مُؤْمِنِيْنَ۝ وَمَا لَكُمْ

په هغې باندې | که چرې يئ تاسو|په آيتونو دهغه باندې|ايمان راوړونکی | اوڅه وجه ده | تاسولره

که تاسو دهغه ذات په حکمونو باندې ايمان لرئ| ............او اخرپه تاسو څه شوی دی چه تاسو دې

اَلَّا تَاْكُلُوْا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَقَدْ

چې نۀ خورئ تاسو|دهغې ځاروی نه|چې يادشوې دی| نوم |دالله|په هغې باند|اوحال داچې بيشکه په

دهغه ځاروی نه خوراک نه کوئ| چې دالله ﷻ نوم پرې ياد شوې وی | حال دا دی چې

فَصَّلَ لَكُمْ مَّا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ اِلَّا مَا

تفصيل بيان کړې دی الله| تاسوته | هغه | چې حرام کړی دی الله|په تاسوباندې |مګر | هغه

الله ﷻ څۀ حرام کړی | هغه تاسوته په تفصيل سره بيان کړی دی | مګر هغه چه ........ ..........

اضْطُرِرْتُمْ اِلَيْهِ ؕ وَاِنَّ كَثِيْرًا لَّيُضِلُّوْنَ

چې مجبوره کړې شوی يئ تاسو| هغې ته |اوبيشکه | ډيرخلق | خامخا ګمراهه خبری کوی |

تاسو (دلوږې حالت کښې) هغې ته محتاج شئ (نوبياهم هغه حلال دی) اوډيروخلقوداحال دی

بِاَهْوَآئِهِمْ بِغَيْرِ عِلْمٍ ؕ اِنَّ رَبَّكَ هُوَ اَعْلَمُ

په سبب دخواهشاتو خپلو | بې د علم نه | بيشکه | رب ستا | هغه ښه پوهه دی |

چې بې دليله دخواهشاتو په وجه خلق ګمراه کوی | اوالله ﷻ هغه خلق ډير ښه پيژنی کوم چه

بِالْمُعْتَدِيْنَ۝ وَذَرُوْا ظَاهِرَ الْاِثْمِ وَبَاطِنَهٗ ؕ اِنَّ الَّذِيْنَ

دحدنه اوړيدونکوباندې| اوپريږدئ | ښکاره | ګناه |اوپټه له هغې نه |بيشکه هغه کسان |

دالله ﷻ دحدونونه وړاندې تيريږی | اوښکاره او پټ ګناهونه پريږدئ | بيشکه کوم کسان

يَكْسِبُوْنَ الْاِثْمَ سَيُجْزَوْنَ بِمَا كَانُوْا يَقْتَرِفُوْنَ۝

چې کسب کوی | دګناه | زر به ورکړې شي جزا | دهغه ګناهونو| چې وۀ هغوئ | چې کول به ئې

چې ګناهونه کوی | نو ډير زر به ورته دخپلو کړو سزا ملاو شي .............. ........ ......

**قوله تعالى: فَكُلُوْا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ**

دالله ﷻ په نوم حلال شوی خوړل پکار دی -الله ﷻ خپلو مؤمنانوبنديګانوته اجازت ورکوی چه په کومه حلاله باندې دالله ﷻ نوم اخستې شوې وی هغه تاسو خوړلې شئ. يعنی کوم څناورباندې چه د حلالولو

وخت كښې دالله ﷻ نوم نه وی اخستې شوې هغه حرام دې لكه چه د قريشو كافرانو به مرداره خوړله او په بتانو وغيره نوم باندې چه كوم ځناور ذبحه كيدل هغه به ئې هم خوړل. نو اوفرمائيلې شو چه په كوم ځناور باندې د اللهﷻ نوم واخستې شی هغه تاسو ولې نه خورئ هغه خو تاسو ته حرام څيزخودلې دې اوپه وضاحت سره ئې پوهه كړې يئ. بعضو (فصل) په تشديد سره لوستلې اوبعضو په تخفيف سره. په دواړو صورتونوكښې معنى بيان او وضاحت دې.اوپه سخته مجبورئ اواضطرار كښې كوم څه چه تاسواومومنى ستاسو دپاره حلال دې. بيا اللهﷻ د مشركانو فاسدې رائې ذكر فرمائى چه مړه يعنى مرداره او د غيرالله په نوم كړې شوی حلاله څنګه هغوی د خپل ځان د پاره حلاله جوړه كړه. په هغوی كښې اكثر بغيردعلم نه دخپل نفسانى خواهشاتو تابعدارئى په وجه ګمراه شوی دی اواللهﷻ د دې زياتى كونكونه ښه خبر دې.

قوله تعالى: وَذَرُوْا ظَاهِرَ الْاِثْمِ وَبَاطِنَهٗ

**ښكاره اوپټ ګناهونه پريږدئ:**-ارشاد دې چه ښكاره ګناهونه ټول پريږدنى.د مجاهد رحمه الله نه روايت دې چه دې نه هغه ګناهونه مراد دى چه دكومو د پوره كولو چه كونكى نيت كړې وی. او قتاده رحمه الله فرمائى دې نه پټ اوښكاره ډيراوكم ګناهونه مراد دی. سدی رحمه الله وائى چه ښكاره ګناه دا ده چه بدكاره ښځو سره ئې تعلق وی او پټه ګناه دا ده چه په غلا او پټه باندې بدكاره ښځوسره د ګناه په عمل كښې وی. عكرمه رضی الله عنه فرمائى چه ښكاره ګناه د محرمو ښځو سره نكاح كول دی خو صحيح هم دا دی چه آيت په دې باره كښې بالكل عام دې په كښې د يو خبرې تخصيص نشته.لكه چه فرمائى زما رب هر قسم فاحش كارونه حرام كړی دی كه هغه په ښكاره وی او كه په پټه[1]ددې دپاره اوفرمائيلې شو چه كوم خلق د ګناه كاركوی خامخا به هغوی ته د خپل بد عمل بدله وركولې شی كه هغه ښكاره وی اوكه پټ. درسول اللهﷺ نه تپوس اوشو چه "اثم" څه څيز دې؟حضورﷺ اوفرمائيل چه كوم څيز ستاپه زړه كښې شك پيدا كوی اوستا دا خوښه نه وی چه څوك ستا په دې عمل خبر شی.[2]

| وَلَا تَأْكُلُوْا | مِمَّا | لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللّٰهِ | عَلَيْهِ | وَاِنَّهٗ |
|---|---|---|---|---|
| اومهٔ خورئ تاسو | دهغې مذبوحې نه | چې نهٔ وی يادكړې شوې نوم دالله | په هغې | اوبيشكه دغه خوراك |
| اوتاسو دهغې (مذبوحې غوښې) نه خوراک مه كوئ | چې په كوم باندې دالله ﷻ نوم نه وی اخستې شوې | | | |
| لَفِسْقٌ | وَاِنَّ | الشَّيٰطِيْنَ | لَيُوْحُوْنَ | اِلٰٓى اَوْلِيٰٓئِهِمْ |
| خامخاګناه ده | اوبيشكه | شيطانان | خامخا وسوسې اچوی | دوستانوخپلوته |
| بيشكه دا ګناه ده | اوشيطان خپلوملګرو ته د(شكونواواعتراضونو) وسوسې اچوی | | | |
| لِيُجَادِلُوْكُمْ | وَاِنْ | اَطَعْتُمُوْهُمْ | | |
| دپاره ددې چې جګړه اوكړې هغوی ستاسوسره | اوكه چرې | تاسوخبره اومنله دهغوئ | | |
| چې تاسو سره جنګ اوكړی | ..................... اوكه تاسو دهغوئ تابعداری اوكړئ | نو | | |
| اِنَّكُمْ | لَمُشْرِكُوْنَ | | | |
| نو يقينا بيشكه چې تاسو | خامخا مشركان يئ | | | |
| يقينى طور تاسوبه دمشركانونه شئ | | | | |

[1] الاعراف۳۳\۷.

[2] صحيح مسلم كتاب البر. باب تفسير البروالاثم:۲۵۵۳، ترمذی:۲۳۸۹، احمد:۱۸۲/۳، ابن حبان: ۳۹۷.

**قوله تعالى: وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ**

**د ذبح په وخت د الله ﷻ نوم نه اخستلو حکم:**-په دې آیت کښې داخودلې شوی دی چه کله په یوه حلاله باندې د اللهﷻ نوم نه وی اخستې شوې نو هغه حلاله نه ده سره د دې که ذبحه کونکې مسلمان ولې نه وی. د فقهی امامانو په دې کښې درې اختلافه دی.

**اول قول**- بعضې وائی چه داقسمه مذبوحه حلاله نه ده په کوم چه د اللهﷻ نوم نه وی اخستې شوې که په قصدسره نه وی اخستې شوې یا په هیره سره.د دې قول تائید دمتقدمینواومتاخرینو اصحابونه یوې ډلې کړې دې.متاخرینو شوافعو خپل کتاب "اربعین" کښې هم دا اختیارکړې دې اودخپلې رائې په تائیدکښې د دې آیت نه اودښکار دآیت نه دلیل نیولې دې.خورنې کوم چه ستاسو دپاره ستاسو ښکاری خناورورا حصارکړې وی اوپه دې باندې د اللهﷻ نوم اخلئی(۱)بیانی هم پدې آیت کښې د اللهﷻ دقول ﴿وَإِنَّهُ لَفِسْقٌ﴾نه تاکید کړې دې او ونیلې ئې دی چه د﴿انه﴾ضمیر د﴿اکل﴾طرف ته راجع کیږی یعنی داسې حلاله خوړل فسق اوګناه ده اودا هم ونیلې شوی دی چه حلاله ﴿لِغَيْرِاللهِ﴾ طرف ته عاند کیږی یعنی داسې حلاله کول فسق دې. اوهغه احادیث چه د حلالې اوصیدیعنی ښکار په وخت کښې د نوم اخستوباره کښې واردشوی دی د عدی ابن حاتم اوابی ثعلبه داحادیثوپه شان دی.لکه چه ته کله ساتلې شوې سپې په ښکار پسې لیږې نو د لیږلو په وخت کښې بسم الله وایه نو هغه چه ستاد پاره ښکار رانیسی اودې نه خوری نه نو تاله هغه ښکار خوړل جائز دی که هغه زخمی شوې او مړشوې وی.(۲) دا دواړه احادیث په بخاری اومسلم شریف کښې دی چه د کوم نه وینه بهیدلې وی او د اللهﷻ نوم پرې اخستې شوې وی نوهغه خوړلې شئی(۳)

اودجندب بن سفیان په حدیث کښې دی چه حضورﷺ فرمائیلی چه د قربانئی په اخترکښې چا د مانځه نه وړاندې حلاله اوکړه هغه له پکار دی چه د مانځه نه پس دونمه حلاله اوکړی او چا چه د مانځه نه پس حلاله نه وی کړې نو پکار دی چه د اللهﷻ نوم واخلی او حلاله اوکړی(۴) دحضرت عائشه ﵂ نه روایت دې چه خلقو تپوس اوکړویارسول اللهﷺ! خلق مونږ ته په تحفه کښې غوښنه راکوی خومونږ ته پته نه وی چه په هغې باندې د اللهﷻ نوم اخستې شوې که نه. نو حضورﷺ اوفرمائیل چه که ستا شك وی نو پخپله د اللهﷻ نوم واخله او ونې خوره. حضرت عائشه ﵂ فرمائیل چه دا نوی مسلمانان شوی خلق وو(۵)دا بخاری ﷫ روایت کړې دې. ددلالت وجه داده چه دې خلقوبه ګنړل چه نوم اخستل ضروری دی او کیدې شی چه تحفه ورکونکی پدې وجه نوم نه وی اخستې چه نوی مسلمانان وو ددې دپاره حضورﷺ د احتیاط د پاره دخوراك په وخت کښې نوم اخستلو هدایت اوکړو دې د پاره ﴿ولوفرضنا﴾ که مونږ اوګنړود حلالولو په وخت کښې په دې نوم پاتې شوې هم وی نو په هغه وخت کښې به نوم اخستل د هغې بدل شی او دې خلقو ته ئې حکم ورکړو چه د اسلام احکام پوره شی.

**په وخت د ذبح کولو کښې تسمیه شرط ده کنه؟**.اوپه مسئله کښې دونم مذهب دادې چه د حلالولو په وخت کښې نوم اخستل څه مشروط نه دی بلکه مستحب دی که قصداً یا سهواً نوم وانخستې شی نو

---

(۱) المائده،٤١٥.

(۲) صحیح بخاری کتاب الذبائح والصید، باب التسمیه علی الصید:٥٤٧٥، صحیح مسلم:١٩٢٩.

(۳) صحیح بخاری کتاب الذبائح باب صید من البهائم فهو بمنزلة الوحش:٥٥٠٩، صحیح مسلم:١٩٦٨، ترمذی: ١٤٩١، ابن ماجه:٣١٣٧، احمد:٤٦٣/٣، ابن حبان: ٥٨٨٦

(۴) صحیح بخاری کتاب الذبائح باب قول النبی ﷺ فلیذبح علی اسم الله: ٥٥٠٠، صحیح مسلم: ١٩٦٠، ابن ماجه: ٣١٥٢، احمد: ٣١٢/٤ ابن حبان: ٥٩١٣

(۵) صحیح بخاری کتاب الذبائح باب ذبیحه الاعراب ونحرهم: ٥٥٠٧، ابوداؤد: ٢٨٢٩، ابن ماجه: ٣١٧٤، بیهقی:٢٣٩/٩.

هيڅ بدوالیٰ نشته. اوهم دغه د امام شافعي رحمه الله مذهب دې او امام احمد رحمه الله او امام مالك رحمه الله هم دا وائی اوشافعي رحمه الله دا آيت ﴿وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ وَإِنَّهُ لَفِسْقٌ﴾ په هغه حلاله محمول کړې دی چه په هغې د الله ﷻ نوم نه وی اخستې شوې لکه چه دالله ﷻ قول دې ﴿أَوْ فِسْقًا أُهِلَّ لِغَيْرِ اللَّهِ بِهِ﴾ او ابن جريج رحمه الله وائی چه په دې کښې دخوړلو ممانعت نه مراد دا دې چه هغه حلاله مه خورئی کومه چه قريشو د بتانو د پاره حلال کړې وی.دغه شان د مجوسيانو دحلالې خوړلونه هم ممانعت دې او هم دغه مسلك دې په کوم چه امام شافعي رحمه الله روان دې او هم دغه قوی هم دې. بعضو متاخرينو د دې خبرې کوشش کړې دې چه دا قول نی داسې قوی جوړ کړې چه ﴿وَإِنَّهُ لَفِسْقٌ﴾ کښې واو نی حاليه ګرځولې دې. يعنی د الله ﷻ نوم نه اخستو سره حلاله مه خورئی او داسې کول فسق دې او فسق هم هغه دې چه د الله ﷻ د نوم نه بغيرحلاله کړې شوی وی. بيائی دا دعوه کړې ده چه دا متعين دی اودا جائزنه دی چه واو عاطفه وی ځکه چه په داسې صورت کښې د جمله اسميه خبريه عطف په جمله فعليه طلبيه باندې لازم راځی چه غلطه خبره ده.ځکه چه دا دليل د دې نه پس جمله﴿وَإِنَّ الشَّيَاطِينَ لَيُوحُونَ إِلَىٰ أَوْلِيَائِهِمْ﴾ باندې ماتيږی ځکه چه دلته خو يقيناً عطف دې نو چه څنګه وراندينی واو ته حاليه اووئيلې شو نو که دا حاليه اونه منلې شی نو بيا به په دې باندې د دې جملې عطف ناجائز شی اوکه دا په رومبنئی جمله فعليه طلبيه باندې عطف کړې شی نو چه کوم اعتراض په نورو باندې واردکوی هم هغه به په ده باندې وارد شی. اوکه دا واو حاليه اونه شی منلې نو دا اعتراض ختميدې شی. خو کومه خبره چه دعوی وه هغه به په دې سره باطل شی. والله اعلم.د حضرت ابن عباس رضي الله عنه قول دې چه دې نه مراد مردار ځناور دې چه پخپله مړشوې وی. د دې مذهب تائيد د ابوداؤد په مرسل حديث سره هم کيږی په کوم کښې چه د حضور ﷺ فرمان دې چه د مسلمان حلاله حلاله ده که هغه په دې باندې د الله ﷻ نوم نه وی اخستې ځکه که هغه نوم اخستلو نو هم د الله ﷻ نوم به نی اخستلو([1])دا مرسل حديث دې او د دې تائيد د دارقطنی د دې حديث نه کيږی کوم چه د ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې که مسلمان حلاله اوکړی اود الله ﷻ نوم ئی نه وی اخستې هم خوړلې شی ځکه چه هغه مسلمان پخپله د الله ﷻ يونوم دې([2])او هغه چه کله حلاله کوی نو په نيت کښې به ئی هم دغه وی چه د الله ﷻ په نوم باندې حلاله کوم. امام بيهقي رحمه الله هم د عائشه صديقه رضي الله عنها د حديث نه هم کوم چه اول تيرشو حجت اخستې دې چه خلقو تپوس اوکړو يارسول الله ﷺ! خلق نوی مسلمانان وی خلق دغوبنې تحفه راوړی مونږ ته پته نه وی چه هغوی به د الله ﷻ نوم په دې باندې اخستې وی که نه نو وئی فرمائيل تاسو د الله ﷻ د نوم اخستو سره خورئی.نوکه چرې نوم اخستل ضروری هم وې نو هغوی ﷺ به بغيرد تحقيق نه د خوراك اجازت نه ورکولو. والله اعلم.

**دريم قول::** په دې مسئله کښې دريم قول دا دې که په حلاله باندې بسم الله وئيل هير شو نو د دې په خوراك کښې هيڅ حرج نشته او که په قصد پريخودې شی نو جائز به نه وی. د امام مالك رحمه الله او امام احمد رحمه الله هم دغه مذهب دې او امام ابوحنيفه رحمه الله اود هغه د ملګری هم د دې قائل دی. امام ابوالحسن په خپل کتاب "الهدايه" کښې ليکلی دی چه د امام شافعي نه اول اجماع په دې باندې وه که په قصد بسم الله پريخودلې وی نو حرام دی د دې وجې ابويوسف او نورو مشائخو وئيلی دی که يو حاکم د داسې حلالې د غوبنې د خرڅولو اجازت اوکړی نودا حکم به نه شی نافذ کولې ځکه چه په دې کښې د امت د اجماع مخالفت دې اود اجماع مخالفت سره يوه خبره هم جائز کيدې نه شی. د صاحب هدايه دا خبره عجيبه ده. سره د دې چه د امام شافعي نه اول هم داسې اختلاف ثابت دې. والله اعلم.

---

[1]) مراسيل ابی داوٗد:۳۷۸.

[2]) دارقطنی ٤/۲۹٦، ح:٤۷٦۰، بيهقی:۹/۲۳۹.

امام ابوجعفر بن جرير رحمه الله وائي چه چا د هيره کړې شوې حلاله حرام اوګرځوله هغه د مجتمعه دليل قائل کيدونه خپل خان جدا کړو اوچه کوم حديث دحضور ﷺ نه ثابت دې دهغې مخالفت ئې اوکړو. هغه حديث دا دې چه د مسلمان د پاره د هغه مسلمان کيدل کافي دی که هغه د حلالولو په وخت کښې هيره کړې شوې وی او د الله ﷻ نوم ئې نه وی اخستې ته د الله ﷻ نوم واخله او خوره. او دې حديث ته په خطا سره مرفوع وئيلې شوې دې او نورو د دې توثيق کړې دې او هم دغه صحيح دی. ابن جرير رحمه الله او محمد بن سيرين رحمه الله په هيرې سره بسم الله وئيل پريخودلو ته مکروه وئيلې دی او سلف د کراهت د لفظ اطلاق په حرام باندې کوی. امام جعفر بن جرير رحمه الله وائي چه کومو خلقو د حلالې په وخت کښې په هيرې سره بسم الله نه وئيل باندې هم حلاله حرام ګرځولې ده هغوی د نورو دلائلونه خلاف کولو سره د دې حديث هم مخالفت کړې کوم چه ثابت دې چه حضرت ﷺ فرمائيلی دی چه د مسلمان د پاره د هغه مسلمان کيدل کافي دی که هغه د حلالولو په وخت کښې د الله ﷻ نوم اخستل هيرکړې وی نو اوس دې خورونکې د الله ﷻ نوم اخستو سره اوخوری. دې نه دا ثابته شوه چه دې ته مرفوع وئيل خطا ده اودا خطا د معقل بن عبيدالله جزری ده. د امام بيهقی رحمه الله د وينا مطابق دا قول د ټولونه زيات صحيح دې. د امام ابن جرير رحمه الله طريقه دا ده چه هغه دې دواړوقولونو کښې يو قول ته هيڅ توجو نه ورکوی کوم قول چه د جمهورو خلاف وی او هم دا اجماع قابل عمل اجماع ګڼړی.

حضرت حسن بصری رحمه الله نه يو سړی د مسئلې تپوس اوکړو چه يو سړی له ډيرې حلالې کړې شوې مرغئې راوړلې شوې کوموکښې چه په بعضو باندې د الله ﷻ نوم اخستلو سره حلالې کړې شوې وې او په بعضو باندې د الله ﷻ نوم اخستل هير شوی وو او دا دواړه قسمه مرغئې خپلوکښې ګډې وډې شوې وې. نوحسن بصری رحمه الله اووئيل دا ټولې خوړلې شی.دمحمد بن سيرين رحمه الله نه هم دغه سوال اوکړې شو نو وئې وئيل چه په کوموباندې د الله ﷻ نوم نه دې اخستې شوې مه خورئې ځکه چه الله ﷻ هم دا وئيلی دی﴿وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ﴾ اود خپلې فتوې د پاره ئې د دې حديث نه دليل اخستې چه په ابن ماجه کښې هم روايت دې يعني د دې درئم مذهب دليل کښې دا حديث هم پيش کولې شی. کوم کښې چه حضور ﷺ فرمائيلی الله ﷻ زما په امت باندې خطا او هيره معاف کړې ده او د مجبورئې په وجه خطا کول هم معاف کړی دی[1]خو دا دغورقابل څيز دې.په يو حديث کښې دی چه يو سړې حضور ﷺ له راغلو او وئې وئيل که چرې په مونږ کښې يو سړې حلاله اوکړی او بسم الله وئيل هير کړی نو په دې کښې څه حکم دې؟ نوحضور ﷺ فرمائيلی وو چه د مسلمان د پاره هم مسلمان کيدل کافي دی. هغه پخپله د الله ﷻ نوم دې[2] ليکن د دې سند ضعيف دی.مروان بن سالم او ابوعبدالله شامی د دې راويان دې او په دوی باندې ډيرو ائمو حضراتو جرح کړې ده. ما په دې مسئله باندې يوه جدا رساله ليکلې ده اود آئمه مذاهب او ماخذ اود هغوی دليلونه اود دلالت وجه اود معارضت وجه وغيره په ټولو خبرومې رڼړا اچولې ده. والله اعلم.

### د متروک التسميه څاوری حکم

**مسلک حنفي:-** د احنافو په نيز په کوم څاروی چې د الله ﷻ نوم وانخستې شی نو د دې دوه صورتونه دی يو دا چې د ذبحې په وخت کښې ترې د الله ﷻ نوم هير شی نو په دې صورت کښې دغه ذبيحه حلاله ده اودويم صورت دا دې چې په قصد باندې د الله ﷻ نوم د ذبحې په وخت کښې وانخلی په دې صورت کښې دغه د بيحه خوړل ناجائز او حرام دی[3]

---

[1] ) دا روايت په سوره البقره آيت نمبر۲۸۶ لاندې تيرشوې دې.

[2] ) دارقطنی: ۲۹۵/۴،ح: ۴۷۵۸، بيهقی:۲۴۰/۹.

[3] ) (احکام القرآن للجصاص (۱۱۱۳)-

ابن جرير رحمه الله فرمائي چه اهل علمو په دې باره کښې اختلاف کړې دې چه ايا د دې ايت حکم منسوخ دې که نه. نو بعضو وئيلي چه حکم ئې منسوخ نه دې بلکه محکم او د عمل قابل دې او هم په دې وجه د مجاهد رحمه الله او عام اهل علمو قول دې. که حکم منسوخ وې نو مجاهد رحمه الله وغيره به داسې وينا نه کوله. عکرمه رحمه الله او حسن بصري رحمه الله وائي چه الله تعالىٰ فرمائيلي دي چه په کوم باندې د الله تعالىٰ نوم اخستې شوې وی هغه خورئې که چرې تاسو د الله تعالىٰ په آياتونو ايمان لرونکې ئې. او الله تعالىٰ فرمائيلي دي چه په کوم باندې د الله تعالىٰ نوم نه وی اخستې شوې هغه مه خورئې ځکه چه دا فسق دې نو دا آيت منسوخ دې خو ددې نه مستثنى.د الله تعالىٰ دا قول دې ﴿وَطَعَامُ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ حِلٌّ لَّكُمْ وَطَعَامُكُمْ حِلٌّ لَّهُمْ﴾ يعنى د اهل کتابوحلاله ستاسو دپاره حلاله ده او ستاسو حلاله د اهل کتابو دپاره. د ابن ابى حاتم رحمه الله قول دې چه الله تعالىٰ په قرآن کښې فرمائيلي دي چه مه خورئې په کوم چه د الله تعالىٰ نوم نه وی اخستې شوې. بيا الله تعالىٰ دا منسوخ کړو او په مسلمانانوباندې ئې رحم اوکړو او وئې فرمائيل چه اوس ټول پاک څيزونه ستاسود پاره حلال دی اود اهل کتابو حلاله هم ستاسو د پاره حلاله ده. رومبئې خبره ئې په دې آيت سره منسوخ کړه اود اهل کتابو حلاله ئې هم ستاسو د پاره حلال اوګرځوله.ابن جرير رحمه الله وائي چه صحيح خو هم دغه دی چه داهل کتابو خوراك حلال کيدل اود الله تعالىٰ نوم نه اخستې شوې حلالې حرام کيدوکښې هيڅ تعارض نشته. دغه بيان دې کوم چه د صحيح وئيلو حقدار دې او چا چه دا منسوخ ګرځولې نو دې نه سوا بل هيڅ نه دی چه دا ئې خاص کړو.

**شيطانان خپلودوستانوته وحى صرف دجګړې دپاره کوی:-** دالله تعالىٰ ارشاددې﴿وَإِنَّ الشَّيَاطِينَ لَيُوحُونَ إِلَىٰ أَوْلِيَائِهِمْ لِيُجَادِلُوكُمْ﴾شيطانان خپلو دوستانوته خپلې خبرې ددې د پاره وحى کوى چه هغوى تاسوسره بحث مباحثه اومناظره اوکړې. يوسړی حضرت ابن عمر رضي الله عنه ته اووئيل چه دمختاردا دعوى ده چه دهغه طرف ته وحى کيږى نو وئې وئيل هغه رښتيا وئيلي بيائې دا آيت اولوستلو يعنى شيطان خو خپلو دوستانوته هم وحى کوى.د ابوزميل رحمه الله نه روايت دې چه زه ابن عباس رضي الله عنه سره ناست اووم هغه وخت مختار حج کولو له راغلې وو نو يو سړې ابن عباس رضي الله عنه له راغلو او وئې وئيل اې ابن عباس رضي الله عنه! ابواسحق ګمان کوى چه نن شپه په هغه باندې وحى راغلې ده نو ابن عباس رضي الله عنه اوفرمائيل چه رښتيا وائي.ما چه داواوريدل نوپريشان شوم چه ابن عباس رضي الله عنه دهغه دقول تصديق کوى نوابن عباس رضي الله عنه اووئيل چه وحى دوه قسمه وی يوه د الله تعالىٰ وحى او بله د شيطان وحى. د الله تعالىٰ وحى دمحمد مصطفى احمد مجتبى ﷺ طرف ته اود شيطان وحى دهغه د دوستانو طرف ته. بيا ئې هم داآيت تلاوت کړو. د عکرمه رضي الله عنه هم داسې قول وړاندې بيان شوې دې.د الله تعالىٰ قول ﴿لِيُجَادِلُوكُمْ﴾باره کښې وئيلې شوی دی چه يهوديانو به حضور ﷺ سره جګړه کوله او وئيل به ئې چه څنګه عجيبه خبره ده چه مونږ کوم څناور قتل کړو نو هغه خو خورئې او.کوم چه الله ﷻ پخپله قتل کړې وی هغه نه خورئې او حرام ئې ګرځونې. نو دا آيت نازل شو﴿وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ وَإِنَّهُ لَفِسْقٌ﴾دامرسلاً روايت کړې شويدی[1] او ابوداؤد متصلاً روايت کړې دې. دا په څو وجو د غور قابل دې يو دا چه يهوديانو مړشوې څناورخوړل جائز نه ګڼړل نو بيا هغوى په دې باره کښې خلاف ولې کوى بل دا چه دا آيت په سورة انعام کښې دې چه مکى دې او يهوديان خو په مدينه کښې اوسيدل او دريم دا چه دا حديث ترمذى روايت کړې دې کوم چه د ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې[2] او ترمذى وائي چه خلق يعنې يهود نبى اکرم ﷺ له راغله بيا ئې د دې حديث ذکر اوکړو او دا عجيبه خبره ئې اوکړه. حسن بصري رحمه الله فرمائي چه داحديث غريب دې او د سعيد بن

[1]) ابوداؤد کتاب الضحايا باب فى ذبائح اهل الکتاب: ۲۸۱۹.

[2]) ترمذى کتاب التفسير القرآن باب ومن سوره الانعام: ۳۰۶۹ وهوحسن.



جبیر نه هم مرسل روایت شوې. طبراني دحضرت ابن عباس ﷺ نه روایت کولو سره لیکي چه کله دا آیت نازل شوچه د الله ﷻ نوم نه اخستلې شوی مه خورئ نو اهل فارس قریشوته دا وینا راولیږله چه محمد ﷺ سره په دې کښې بحث اوکړئ اوورته اووایئ چه پخپله چاړه قتل کړې شوې خو حلال شو او کوم چه الله ﷻ په خپله توره حلال کړو یعنی مړکړو نوهغه حرام شو دا څنګه خبره ده؟ نو دا آیت نازل شو چه شیطانان خپلو دوستانو ته ښائي چه تاسره جنګ اوکړي او بحث او مجادله اوکړي.(۱) که چرې تا د هغوی خبره اومنله او مړ دې حلال اوګڼړلو نو ته به هم مشرك اوګرځولې شې. مراد دا چه د فارس شیطانان قریشو ته وحی رالیږي. د ابن عباس ﷺ په روایت کښې د یهودو ذکر نشته او دغه د اعتراض نه د بچ کیدلو محفوظ صورت دې ځکه چه دا آیت مکی دې اودا هم چه یهود خومړخوښوی هم نه.اوپه بعضې الفاظوکښې د ابن عباس ﷺ نه داسې روایت دې چه تاسو کوم قتل کوئ په هغې د الله ﷻ نوم یادول وی او چه پخپله مری په هغې باندې د الله ﷻ نوم یادول نه وی.د اهل فارس په خودلو چه کله دوئ د رسول ﷺ په صحابه کرامو باندې دا اعتراض اوکړو نو دمسلمانانو په زړونوکښې یو شك غوندې راپیدا شو نو آیت نازل شو او د مجادله کونکو راز ښکاره شو.سدی رحمه الله د دې آیت په تفسیرکښې وئیلی دی چه مشرکانو مسلمانانوته وئیلي وو چه تاسو خو دعوی کوئ چه مونږ د الله ﷻ مرضی خوښوو بیا د الله ﷻ وژلې شوې نه خورئ او خپل قتل کړې شوې خورئ.نواوفرمائیلې شو چه که تاسودهغوی ددلیلونوپه دهوکه کښې پریوتلې نوتاسو به هم مشرکان جوړشئ لکه چه اوفرمائیلې شو ﴿اتَّخَذُوٓا۟ أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِّن دُونِ ٱللَّهِ﴾ یعنی خپل مشران اوراهبان د الله ﷻ په ځائ هغوی خپل ارباب جوړکړل اوهم دهغوی عبادت کښې اخته شو نو عدی بن حاتم اووئیل چه یا رسول الله ﷺ هغوی د راهبانو او احبارو خو عبادت نه کوی نو حضور ﷺ اوفرمائیل چه دې مشرانو حلال حرام او حرام حلال کړل او هغه خلقو د هغوی اومنل نو هم دا خوئي عبادت شو.(۲)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | | أَوَمَنْ | كَانَ مَيْتًا | فَأَحْيَيْنَٰهُ |
| | | ایاهغه څوك | چې ووا مړ | نو ژوندی کړو مونږ هغه |
| | | ایا هغه څوک چې مړ وو | | اومونږ ژوندي کړوا |

| وَجَعَلْنَا لَهُ | نُورًا | يَمْشِي | بِهِ | فِي ٱلنَّاسِ | كَمَن |
|---|---|---|---|---|---|
| اوورکړومونږ هغه لره | نور | چې تګ کوی | په هغې سره | په خلقو کښې | په شان دهغه چادې |
| اوداسې رڼامو ورکړه چې دخلقو مینځ کښې پرې ژوند تیروی ګرځي | | | | | ..........دهغه چا |

| مَّثَلُهُ | فِي ٱلظُّلُمَٰتِ | لَيْسَ | بِخَارِجٍ مِّنْهَا | كَذَٰلِكَ | زُيِّنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې مثال دهغه | په تیارو کښې | پروت وی | ائ وی وتونکې دهغې نه | دارنګې | ښایسته کړې شوی |
| پشان کیدې شی | چې په تیارو کښې وی | | اودهغې نه بهر نشی راوتې | | .........دغه شان |

| لِلْكَٰفِرِينَ | مَا | كَانُوا۟ | يَعْمَلُونَ ﴿١٢٢﴾ |
|---|---|---|---|
| دپاره دکافرانو | هغه کارونه | چې دی دوئ | اچې کوی ئې |
| کافرانو ته د هغوئ (خراب) عملونه ښائسته شوی دی | | | |

(۱) المعجم الکبیر: ۱۱۶۱۴.

(۲) ترمذی کتاب التفسیر القرآن باب ومن سوره التوبه: ۳۰۹۵ وسنده حسن.

**قوله‌تعالی:: وَجَعَلْنَا لَهُ نُورًا يَمْشِي**

**ایمان رڼا او کفر تیاره ده:-** دا دمثال په توګه الله ﷻ اوفرمائیل چه ایمان راوړونکې اول مړه وو یعنی په ګمراهئ کښې هلاکیدونکی اوحیران وونوهغه الله ﷻ ژوندی کړل یعنی دهغه زړه ته ئې د ایمان دولت ورکړو اود رسول الله ﷺ د تابعدارئې توفیق او هدایت ئې ورکړو او دهغه د پاره ئې یوه رڼا اوګرځوله چه د هغه په تګ کښې لار خودنه کوی. دا نور قرآن دې او دا مؤمن د هغه سړی په شان څه کیدلې شی چه د خپل جهالت او ګمراهو په تیارو کښې وی اوځوك چه د دې تیارو نه د راوتلو هیڅ لار نه وینی د کوم نه چه د هغه هډو خلاصې نه شی کیدې. لکه چه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چه الله ﷻ خپل مخلوق په تیاروکښې پیدا کړې بیائې په هغه د نور باران اوکړو چاچه دانوراومونډلو هغه هدایت بیاموندلواو چا چه دا نور وانخستلو هغه په دنیاکښې ګمراه پاتې شو([1])لکه څنګه چه الله ﷻ فرمائیلی دی الله پاك ولی دې د هغه خلقو چاچه ایمان راوړو او هغه د تیارونه راوباسی او د رڼا طرف ته ئې اوړی او چه چا کفر اوکړو دهغوی اولیاء شیطانان دی چه هغوی د نور نه راوباسی او تیارو طرف ته ئې اوړی. هم دغه دوزخیان دی چه همیشه به په هغې کښې وی([2])الله ﷻ فرمائی چه څوك سر ټیټ کړی او ټیټ ګرځی هغه ډیر هدایت یافته دې یا هغه چه نیغ او په صراط مستقیم باندې روان دې.([3]) او ونې فرمائیل چه د دوو قسمو خلقو مثال داسې دې چه یو خو دی ړانده او کاڼړه او نور دی د غوږونو او سترګو والا نو دا دواړه برابر کیدې شی. آیا تاسو په دې خبره لږ هم نه پوهیږئې([4])او ونې فرمائیل بینا او نابینا دواړه برابریدلې نه شی اونه تیاره او رڼا اونه سورې او نمر اونه مړاو ژوندې. الله ﷻ چه چاته اورول غواړی نو اوروی ته دقبرمړو ته نه شئې اوروليـ.ته خو صرف د الله ﷻ د عذاب نه ویرونکې ئې([5]) په دې موضوع باندې ډیر آیاتونه دی د دې مثالونو د مناسبت وجه رڼا او تیاره ده چه د دې سورت په اول کښې ددې مثال سره شروع شوې. یعنی( وَجَعَلَ الظُّلُمٰتِ وَالنُّوْرَ) نه شروع شوې.

**ددې مبارك نه څوك مراد دی ؟**-بعضو دا خیال ښکاره کړې دې چې د دې مثال نه مراد دوه معین سړی دی او هغه عمر بن خطاب ﷺ لکه چه اول مړ وو بیا الله ﷻ هغه ژوندې کړو او هغه ته ئې نور ورکړو او هغه دانوراخستې د خلقوپه مینځ کښې ګرځی او اوونیلې شو ی دی چه عماربن یاسر ﷺ مراد دې خو چه څوك په تیاروکښې دی هغوی ددې نه وتلې نه شی اوهغه ابوجهل یعنی عمروبن هشام دې. او صحیح هم دادی چه آیت عام دې په دې کښې هر مؤمن او کافرداخل دې.اود الله ﷻ قول دې (كَذٰلِكَ زُيِّنَ لِلْكٰفِرِيْنَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿﴾)یعنی الله ﷻ کافرانو ته دهغوی اعمال ښکلې جوړوی او ښائی اودا خبره د هغوی د ګمراهئ او جهالت په وجه ده.

| جَعَلْنَا | وَكَذٰلِكَ |
|---|---|
| مقررکړی دی مونږه | اوهم دارنګې |
| په هر کلی کښې | ... ...اودغه شان مونږ |

[1] )ترمذی کتاب العلم باب ماجاء فی افتراق هذه الامه ۲٦٤۲وهوصحيح، احمد:۱۷٦/۲، ابن حبان: ٦۱٦۹، حاکم: ۳۰/۱ الشريعة للاجری: ص:۱۷۵.

[2]) البقره۲\۲٦۷.

[3]) الملک ٦۷\۲۲.

[4]) هود۱۱\۲٤.

[5]) فاطر۳۵\۱۹-۲۳.

فِيْ كُلِّ قَرْيَةٍ أَكٰبِرَ مُجْرِمِيْهَا لِيَمْكُرُوْا فِيْهَا ط

په هر كلي كښې| غټان |مجرمان دهغه كلي|دپاره ددې چې مكراودوكې اوكړي|اوپه هغه كلي كښې

غټ مجرمان مقرر كړي دى | ............چې مكر او دهوكې په كښې خوروى ............

وَمَا يَمْكُرُوْنَ إِلَّا بِأَنْفُسِهِمْ وَمَا يَشْعُرُوْنَ ۝ وَإِذَا

اونه كوى دوكې | مګر |دخانونوخپلوسره| اونه پوهيږى دوىٔ | اوكله چې|

اودوىٔبل چاسره نه بلكهٔصرف خپلوځانونو سره دهوكه كوى| خودوىٔ نه پوهيږى | اوكله چې

جَآءَتْهُمْ اٰيَةٌ قَالُوْا لَنْ نُّؤْمِنَ حَتّٰى نُؤْتٰى

راشي دوىٔ ته| يوآيت |نووائى دوىٔ|چې هرګزنه منومونږه| تردې پورې| چې راكړې شى مونږ ته

دوىٔ ته يوه نښه راشي | نودوىٔ وائى چې مونږ هيڅكله نه منو| ترڅوچې پخپله مونږ ته

مِثْلَ مَآ أُوْتِيَ رُسُلُ اللّٰهِ ط اَللّٰهُ أَعْلَمُ حَيْثُ

په شان |دهغې | چې وركړې شوې دي | رسولانو دالله ته| الله |ښه پوهيږى | په هغه ځاې

هغه شان نښې رانكړې شى | لكه څنګه چې الله ﷻ خپلورسولانوته وركړې دى| الله ﷻ ښه پوهيږى

يَجْعَلُ رِسٰلَتَهٗ ط سَيُصِيْبُ الَّذِيْنَ أَجْرَمُوْا صَغَارٌ عِنْدَ اللّٰهِ

چې ږدى |پيغمبرى خپله |زربه اورسيږى|هغه كسانوته| چې مجرمان دى| سپكوالې | په نز دالله

چې دپيغمبرىٔ كارچانه واخلى | كومو كسانو چه جرم كړې دې هغوىٔ ته به دالله ﷻ دطرفنه ډيرزر

وَعَذَابٌ شَدِيْدٌ بِمَا كَانُوْا يَمْكُرُوْنَ ۝

اوعذاب | سخت | په سبب دهغې| چې وو دوىٔ | چې مكرونه به ئې كول

سخت د ذلت عذاب اورسى | ځكه چې دوىٔ به ډيرمكرونه كول|

قوله تعالى:: وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَا فِيْ كُلِّ قَرْيَةٍ أَكٰبِرَ مُجْرِمِيْهَا

**په هره زمانه كښې ګمراهانومشرانو داسلام خلاف تدبيرونه كړى دي:-** الله ﷻ فرمائى اې محمد ﷺ! لكه څنګه چه ستا په وطن كښې لوىٔ لوىٔ خلق مجرم اوكافر ثابت شوى دى چه پخپله هم د الله ﷻ د لارې نه بندشوى دى او نورهم د كفر طرف ته راغواړى اوستا په مخالفت او عداوت كښې وړاندې والې كوى دغه شان ستا نه وړاندې رسولانوسره هم دښمنى كونكى داسې مالداران او دولت مند خلق وو نو چه بيا هغوى ته كومه سزا ملاوْ شوه نو هغه هم معلومه ده. نواوفرمائيلې شو چه مونږ د هر نبى ﷺ د پاره هم داسې مجرمان دښمنان جوړكړې وو([1]) او فرمائى چه كله مونږ اراده كوو چه يو كلې تباه كړو نود هغوى مالدارانوته توفيق وركولې كيږى چه هغوى په دغه كلى كښې فساداوكړى اوفسق اوفجور اوكړى([2])مطلب داچه مونږ هغوى ته د تابعدارئى حكم كووخو هغوى مخالفت كوى نو په دې وجه مونږ هغوى هلاك كړو اودا هم وئيلې شوى دى چه مونږ هغوى ته هغه حكم كووكوم چه دهغوى په قسمت كښې ليكلې وى دې دپاره چه هغوى پدې كښې هغه شيطانت اوكړى او فرمائى چه كوم لى ته هم مونږ

---

[1]) ۲۵الفرقان:۳۱.

[2]) ۱۷الاسرا:۱۶.

خپل ویرونکي لیږلي دي نو د ټولونه اول دهغه ځاى مالدارانو داسې کړي چه مونږ خو نه منو.او وائي چه مونږ تاسو نه په مالونو او اولاد کښې زیات یو مونږ ته به عذاب نه راکولې کیږي او فرمائي چه دا دولت مند وائي چه مونږ خپل پلاران اونیکونه په دې کارمونډلي دی اومونږ خو به هم د هغوى په لار روان یو.[1]

**قوله تعالى:-(لِيَمْكُرُوا فِيهَا)** دې کښې دمکرنه څه مراد دې:- دمکرنه دلته مراددادې چه هغوى پخپل بیهوده بکواس باندې خلق ګمراه کوى لکه څنګه چه د حضرت نوح عليه السلام د قوم باره کښې فرمائیلى دى**(وَمَكَرُوا مَكْرًا كُبَّارًا)** اوفرمائي چه افسوس تاسو دغه ظالمان لیدلي وې چه د خپل رب په وړاندې ولاړ وى او خپلو کښې یو بل ته داسې وائى شاګردان خپلو مشرانو ته او تابع خپل متبوعانوته وائى که مونږ چرې ستاد اثر لاندې نه وونو ایمان به مو راوړلې وونو مشران او متبوعان به خپلو شاګردانو او تابعانو ته وائي چه مونږ تاسو د هدایت نه منع کړې وئ؟ تاسو خو پخپله ګناهګاران او مجرمان وئ او دا چه ستاسو مشوره وه چه مونږ کفراختیارکړو اود الله ﷻ دپاره شریکان جوړکړو.نوخپل خان سره مو مونږهم غرق کړو.[2] سفیان رحمه الله فرمائي چه قرآن کښې د مکر نه مراد عمل دې اوونې فرمائیل چه چالبازى نه کوى هغوى مګرخپل نفس سره خودا خبره هغوى نه منې.یعنې د دې چالبازئ او د نورو ګمراه کولو بوج به پخپله دهغوى په ذاتونو پریوځى.لکه چه فرمائي دا مشران به د خپلو ګناهونو د بوج سره د نورو د ګناهونو بوج او وزن هم اوچتونکى وى.[3] او فرمائي چه ګمراه کونکى څنګه برابر بوج اوچتوى او پوهیږى نه چه د نورو ګناهونه به هم هغوى اخلى[4] او فرمائي چه دې خلقو له کله زمونږ څه نښه راشى نو وائي چه مونږ خو به دهغه وخته پورې ایمان نه راوړو چه ترکوم وخته پورې داسې نښې پیش نه کړې لکه څنګه چه وړاندینوپیغمبرانو خودلې وې. هغوى وائي چه رسول الله ﷺ سره فرښتې ولې د دلیل په توګه نه وى لکه چه هغوى رسول الله ﷺ ته وحې راوړى. لکه څنګه چه اوفرمائیلي شو چه د کومو خلقو مونږ سره د ملاقات یقین نه وى هغوى وائى چه په مونږ باندې هم فرښتې ولې نه نازلیږى یا دا چه مونږ په خپلو سترګو الله ﷻ اووینو.[5]

اودالله ﷻ ارشاد دې **(اللَّهُ أَعْلَمُ حَيْثُ يَجْعَلُ رِسَالَتَهُ)** یعنې الله ﷻ پیژنى چه د رسالت محل څوك جوړول پکار دى او څوك په حقیقت کښې د رسول جوړیدو صلاحیت لرى. لکه چه فرمائي هغوى وائي چه دا قرآن د دواړوکلو په یو لوئ سړى باندې ولې نازل نه کړې شو.آیا هغوى دالله ﷻ درحمت تقسیم به خپل اختیار کوى[6] **(قریتین)** نه مرادمکه او طائف دې.داخبره هغه کمبخت پدې وجه کوى چه نبى کریم ﷺ نې د بغاوت اوحسد په وجه سره دخپل خان نه سپك ګنړلو.لکه چه فرمائي کله داکافران تاته ګورى تاپورې ټوقې اومسخرې کوى اووائي چه ګورئ هغه هم دغه سړې دې چه ستاسومعبودانو پسې خبرې کوى ګرځى سره د دې چه هغه د رحمن ذکر هیرکړې دې.اوفرمائي چه کله هغوى تاته ګورى نوپه ټوقوکښې وائي چه هم دغه دې څوك چه الله ﷻ رسول جوړکړې اوراليږلي دې؟اوفرمائي چه تانه وړاندې هم رسولانو سره دغه شان ټوقې مسخرې کړى دى خوهم دهغوى ټوقومسخروهغوى هلاك کړل.دې بدبختانوته د رسول الله ﷺ د فضل او شرف نسب اعتراف وو اود هغوى ﷺ د خاندان شرافت او د قبیلې

---

[1] ٤٣الزخرف:٢٣.
[2] ٣٤سباء:٣١-٣٢.
[3] ٢٩العنكبوت:١٣.
[4] ١٦النحل:٢٥.
[5] ٢٥الفرقان:٢١.
[6] ٤٣/الزخرف:٣١.

عزت اودوطن دمکې د بزرګۍ اعتراف وو.د اللهﷻ ټولوملائکواو مؤمنانود طرف نه په حضورﷺ باندې درود وی.

**د هر قل په مخکښې د ابوسفيان اقرار**:- ترديې چه دا خلق دحضورﷺ د نبی کيدو د اول نه اود هغوی د خو اخلاقومنونکی وو چه هغوی ﷺ ته نی دامین لقب ورکړی وو اودکافرانود رئیس ابوسفیان پورې د حضورﷺ د رښتیاؤ نه دومره مرعوب وو چه د ملك روم "هرقل" كله دحضورﷺ متعلق اود هغوىﷺ د حسب نسب باره کښې تپوس کړې وو نو هغه ونیلې وو چه هغه په مونږ خلقو کښې ډیر شریف النسب دې. بیانی تپوس کړې ووچه دې نه وړاندې هغه چرته دروغژن هم مشهور پاتې دې نو ابوسفیان ونیلې وو چه هیڅ کله هم نه.(١)غرض دا چه حدیث اوړد دې د کومې نه چه د روم باشاه دا استدلال اوکړوچه هغه د خو صفتونو والا معلومیږی او دا څیزونه خودهغه د نبوت او صداقت دلیل دې. رسول الله ﷺ فرمائیل چه اللهﷻ دابراهیمؑ اولاد نه حضرت اسماعیل ؑمنتخب کړواوبنی اسماعیل نه بنی کنانه او د بنی کنانه نه قریش خوښ کړل اودقریشونه بنی هاشم اود بنی هاشم نه زما انتخاب اوکړو. (٢) د حضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دې چه حضرت اوفرمائیل چه د بنیادمو ښه پیړنی یویل پسې راتله تردې چه هغه ښه پیړنی هم راغله کوم کښې چه زه یم. (٣)

**د رسول کریم ﷺ فضیلت**:: دحضرت عباسؓ نه روایت دې چه حضورﷺ په منبرباندې اوختلو او ونی فرمائیل چه اوبنایئی زه څوك یم؟خلقو ونیل تاسو د اللهﷻ رسولﷺ یئی. نو حضورﷺ اوفرمائیل چه او زه محمد بن عبدالله بن عبدالمطلب یم. اللهﷻ مخلوقات پیداکړل او زه نی په خپل ټول مخلوق کښې د ټولونه بهتر پیدا کړم او خلق نی په دوو ډلوکښې تقسیم کړل او زه نی د ښه ډلې نه اوګرځولم. او چه کله هغه قبیلې پیدا کړې نو د ټولونه په ښه قبیله کښې نی زه اوګرځولم. اللهﷻ خاندانونه پیدا کړل او زه نی د ټولونه بهتر کورنئی کښې پیدا کړم. زه د خاندان په لحاظ په تاسوکښې د ټولو نه ښه یم او د ذات په لحاظ ستاسو ټولونه ښه یم.(٤) رښتیا اوفرمائیل نبی کریمﷺ. د حضرت عائشه صدیقه ؓ نه روایت دې چه حضورﷺ اوفرمائیل چه حضرت جبرائیل ؑ ماته اوفرمائیل اې محمدﷺ! په ټوله دنیا کښې مشرق اومغرب ټول ما چاڼ کړل خود محمدﷺ نه زیات ما څوك غوره اونه موندل او ټول مشرق اومغرب مې اولټول خود بنوهاشم غوندې د خاندان په شان فضیلت لرونکې ماته ملاؤ نه شو(٥)د عبدالله بن مسعودؓ نه روایت دې چه اللهﷻ د ټولو په زړونو نظر واچولو نو د اصحابو زړونه نی د ټولو نه ښه اوموندل نو هم دوی نی د نبی وزیران او امدادیان جوړکړل کوم چه د نبیﷺ سره د دین دپاره جنګ کوی. نو مسلمانان چه څوك ښه ګڼړی د اللهﷻ په نیز هغه ښه وی. او څوك چه مسلمانان خراب ګڼړی هغه د اللهﷻ په نیز هم خراب وی(٦) حضرت سلمان ؓ روایت کړې دې چه ماته رسول الله ﷺ اوفرمائیل اې سلمان!ماسره بغض مه کوه اوخفه مه اوسیږه ګنی نو ته به د خپل دین نه جدا کړې شې.نو ما عرض اوکړو یا رسول اللهﷺ! زه به تاسره څنګه بغض اوکړم او هم ستاسو په ذریعه خو اللهﷻ مونږته هدایت اوکړو نو ونی فرمائیل چه ته عرب قوم سره بغض ساتې نو داداسې ده لکه چه ماسره

---

١ )صحیح بخاری کتاب بدء الوحی باب کیف کان بدء الوحی ابی رسول الله ﷺ٧.صحیح مسلم: ١٧٧٣.

٢ )صحیح مسلم کتاب الفضائل باب فضل نسب النبیﷺ وتسلیم الحجر علیه قبل النبوة: ٢٢٧٦، ترمذی: ٣٦١٠، احمد: ١٠٧/٤، مسندابی یعلی:٧٤٨٥. دلائل النبوة: ١٦٦.

٣ ) صحیح بخاری کتاب المناقب باب صفه النبیﷺ٣٥٥٧، مسندابی یعلی: ٦٥٥٣

٤ ) احمد:٢١٠/١.

٥ ) دلائل النبوة: ١٧٦/١.

٦ ) احمد:٣٧٩/١، وسنده حسن. المعجم الکبیر:٨٥٨٣. مجمع الزوائد: ١٧٧/١، مسندالبزار: ١٣٠، مسندالطیالسی: ٢٤٦.

بغض ساتي.(۱) روایت دي چه یو سړی حضرت ابن عباس ﷺ جمات ته په داخلیدو کښې اولیدو نو چه کله نی دهغه طرف ته اوکتل نو اوویریدو او تپوس نی اوکړو دا څوك دي؟ اوخودلې شو چه دا ابن عباس ﷺ د رسول الله ﷺ د تره خوئ دې. نو ونی ونیل چه الله ﷺ د خپل نبوت او رسالت محل ډیر ښه پیژنی چه څوك د نبوت مصداق جوړیدې شی

**د کفراوګمراهئ اخر انجام ذلت اوعذاب وی:-** اودالله ﷺ قول دې ﴿سَيُصِيبُ الَّذِينَ أَجْرَمُوا صَغَارٌ عِندَ اللَّهِ وَعَذَابٌ شَدِيدٌ﴾ دادرسالت د اتباع نه تکبرکونکو اود رسول ﷺ تابعدارئ نه غرور کونکو د پاره سخت وعید دې. هغه ته به د الله ﷺ په نیزباندې د همیشه سپکاوې اوحقارت نصیب کیږی. دغه شان چه کوم خلق غرور کوی د قیامت په ورځ به دهغې په بدله کښې هغوی ته ذلت ملاویږی. لکه چه فرمانی کوم خلق چه زما د عبادت نه غرور کوی اومخ اړوی هغه به پرمخې دوزخ کښې اوغورزولې شی(۲) او فرمانی چه دهغوی د دې بد عمل په وجه به هغوی ته سخت عذاب ورکولې شی ځکه چه مکر په عام توګه پټ وی. مکر وانی په ډیره نرمه توګه دهوکه بازی او مکارئی ته، هغه ته به د دې په بدله کښې د قیامت په ورځ سخت عذاب اوپوره جزاورکولې شی.د الله ﷺ ارشاد دې ﴿وَعَذَابٌ شَدِيدٌ بِمَا كَانُوا يَمْكُرُونَ﴾ خوالله ﷺ چاته په عذاب ورکولوکښې په چا ظلم نه کوی لکه چه فرمائی ﴿يَوْمَ تُبْلَى السَّرَائِرُ﴾ یعنی په هغه ورځ به تولې پټې خبرې او ټول مکنونات یعنی پټ شوی څیزونه ښکاره کیږی. په بخاری او مسلم شریف کښې دی چه حضور ﷺ فرمانیلی چه دهرباغی اوغداردپاره به په قیامت کښې یوه جهنډا وی اوهغه به دده کوناټوسره لګیدلې وی او وئیلې به شی چه دافلانکې خوئ د فلانکی غدار دې(۳) په دې کښې حکمت دا دې چه دا غداری خو پټه وی خلق دې نه خبریږی نه په دې وجه به د قیامت په ورځ علم او جهنډا جوړه شی چه د غدار د غدارئی اعلان به کوی.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَمَن يُرِدِ اللَّهُ | أَن يَهْدِيَهُ | يَشْرَحْ | صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ | وَمَن |
| پس هغه چاته چې اراده اوکړی الله | چې هدایت اوکړی هغه ته | نو پرانزی | سینه دهغه | دپاره داسلام | او هغه چاته |
| (حقیقت دادې) چې الله د چا د هدایت اراده اوکړی | نو داسلام تعلیم ته دهغه سینه پرانیزی | اوخوک چې |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يُرِدْ | أَن يُضِلَّهُ | يَجْعَلْ | صَدْرَهُ | ضَيِّقًا | حَرَجًا |
| چې اراده اوکړی الله | چې بې لارې کړی هغه لره | نوګرځوی | سینه دهغه | تنګه | بنده |
| ګمراه کول غواړی نودهغه سینه دا شان لنډه تنګه کړی | چې اسلام قبلول ورته داسې ښکاری | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| كَأَنَّمَا يَصَّعَّدُ | فِي السَّمَاءِ | كَذَٰلِكَ | يَجْعَلُ اللَّهُ | الرِّجْسَ | عَلَى الَّذِينَ |
| لکه چې خیژی هغه | په اسمان کښې | دارنګې | مقرروی | الله | پلیتی | په هغه کسانو باندې |
| لکه چې اسمان ته خیژی | دغه شان الله ﷻ پلیتی په هغه کسانو باندې ګرځوی | | | | |

| |
|---|
| لَا يُؤْمِنُونَ ﴿١٢٥﴾ |
| چې ایمان نه راوړی |
| چه ایمان نه راوړی |

(۱) احمد:۵/۴۴۰، حاکم: ۴/۸۶، مسند الطیالسی:۶۵۸.

(۲) غافر:۶۰

(۳) صحیح بخاری کتاب الادب باب مایدعی الناس بابائهم:۶۱۷۸، صحیح مسلم:۱۷۳۶، ابن ماجه:۲۸۷۲، ابن حبان: ۷۳۴۱، بیهقی:۹/۱۶۰.

**قوله تعالى: فَمَنْ يُرِدِ اللّٰهُ أَنْ يَهْدِيَهُ يَشْرَحْ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ**
**دشرح صدرنه څه مراد دي:-** الله ﷻ فرمائي چه چاته هغه هدايت كول غواړي نود اسلام د پاره د هغه زړه كولاؤكړي يعنى د اسلام دين اختيارول دهغه دپاره آسان كړي نودا څيز علامت دي د دې خبرې چه دهغه په قسمت كښې خير ليكلي وو لكه چه فرمائي د اسلام د پاره چه د چا زړه كولاويږي نود الله ﷻ د طرف نه دهغه دپاره نور متعين كولي شي([1])اوفرمائي ليكن الله ﷻ ستاسو په زړه كښې د ايمان مينه واچوله چه ستاسو د زړونو د ښائست ذريعه ده. د كفر فسق او عصيان نه ستاسو په زړونوكښې نفرت اچولې دې. هم داسې خلق رشد او هدايت ته رسيدلي دي([2])حضرت ابن عباس ﷺ د دې آيت باره كښې فرمائيلى الله ﷻ توحيد او ايمان قبلولو د پاره د هغه په زړه كښې وسعت وركوي([3]) ابومالك ﷫ او اكثرو ونيلي دي چه هم دغه خبره ډيره ښكاره او ثابته ده. دابوجعفر ﷫ نه روايت دې چه د حضور ﷺ نه تپوس اوكړې شو چه كوم سړې زيرك او دانا دې نو حضور ﷺ اوفرمائيل هغه څوك چه ډير مرګ يادوى او څوك چه د ټولونه زيات د مرګ نه پس حالاتود پاره خپل ځان تيارونكې وى. اود نبيكريم ﷺ نه د دې آيت باره كښې تپوس اوكړې شو. خلقو ونيل چه يا رسول الله ﷺ! شرح صدر څه څيز دې نو ونى فرمائيل يو نور دې چه په زړه كښې اچولې شى په څه سره چه زړه كولاويږى او وسيع كيږى. يعنى په انسان كښې زړه تنګى باقى نه پاتې كيږى. خلقو اوونيل چه مونږ به داڅيز څنګه اوپيژنو چه ده ته شرح صدر حاصل شويده؟ نو حضور ﷺ اوفرمائيل چه د دې خبرې پته به داسې معلوميږى چه څوك د آخرت د كور طرف ته ډير مائله شوې دې اود دنيا د خبرو نه څومره لرې دې اود مرګ راتلونه اول خپل ځان د مرګ د پاره څومره تيار ساتى.([4])

**دسينې دتنګوالى مطلب::** دالله ﷻ ارشاددې(وَمَنْ يُرِدْ أَنْ يُضِلَّهُ يَجْعَلْ صَدْرَهُ ضَيِّقًا حَرَجًا)څوك چه هغه ګمراه كول غواړى دهغه زړه ډير تنګ كړى.دضيق لفظ دضادپه فتح اوياء په سكون سره دې اواكثرخلق د ياء تشديد اوياء په كسرې سره ګرځوى.دادواړه لغتونه (هَيْنٌ)او(هَيِّنٌ) دي اولفظ (حَرَجَ)بعضودحا فتح او راء په كسره سره لوستلې دې او بل قراءت د حاء فتح اود راء فتح سره دې يعنى هغه داسې ګمراه كيږى چه د هغه زړه لږ شان هم د هدايت د پاره نه كولاويږى او په دې كښې ايمان لار نه بيامومى. حضرت عمر ﷺ د يو كليوال نه تپوس اوكړو چه (حرجة) څه څيز دې؟ نو ونى ونيل چه هغه يوه ونه ده اود ونو په مينځ كښې ده نه څوك څاروى څرونكى هغې ته رسيدلې شى نه څه ښناور اونه څه بل څيز. نو حضرت عمر ﷺ اوفرمائيل چه دمنافقانو زړه هم داسې وى چه د خير د خبرى د هغې ته هډو رسيدل نه شى كيدلې. ابن عباس ﷺ فرمائى الله ﷻ دهغه په زړه باندې اسلام تنګوى څكه چه اسلام يو وسيع څيز دې اود كافر زړه تنګ وى څنګه به هغې كښې ځائ شى. (وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّينِ مِنْ حَرَجٍ) يعنى د دين د قبلولو نه پس ستا په زړه كښې هيڅ تنګى باقى نه شى پاتې كيدې او الله ﷻ ستاسو په دين كښې هيڅ تنګى نه ده كيخودې. خو د منافق زړه په شك كښې اخته وى. د(لااله الاالله) اقرار اودخپل زړه د تنګئى په سبب هغه هډو كولې نه شى. ايمان راوړل په هغه باندې دومره سخت وى لكه چه چا ته په آسمان باندې ختل سخت وى. لكه څنګه چه بنيادم آسمان ته نه شى ختلې دغه شان دتوحيد عقيده دهغه په زړه كښې ځائ كيدې نه شى.اوزاعى ﷫ وائى د چا زړه چه الله ﷻ تنګ جوړ كړې وى هغه څنګه اسلام

---

[1]) ۳۹الزمر:۲۲.
[2]) ۴۹الحجرات:۷.
[3]) الدرالمنثور:۳/۳۵۶.
[4]) الطبرى:۱۲/۱۰۰، الاسماء والصفات:۱/۲۵۷.

راوړلي شي. دایو مثال دي چه د کافر دزړه متعلق نی ونیلي دي چه ایمان د هغه زړه ته ورختل دومره ګران دی لکه چه څوك آسمان ته او خیژی اوپه آسمان باندي ختل ممکن نه دی دغه شان د دي کافر ایمان راوړل ممکن نه دی. بیا ارشاد کیږی څنګه چه دهغه زړه تنګ کړي شو دغه شان شیطان الله ﷻ په هغه باندي مسلط کوی او د الله ﷻ د لاري نه هغه اړوی.ابن عباس ؓ فرمانی ﴿رجس﴾ معنی شیطان او هر هغه څیز په کوم کښي چه څه خیر نه وی او عذاب وی.

وَهٰذَا صِرَاطُ رَبِّكَ مُسْتَقِيمًا ۗ قَدْ فَصَّلْنَا

||اودا لاره | درب ستاده| نیغه |په تحقیق سره|واضحه بیان کړی دی مونږ

| دا ستا د رب خودلي شوي نیغه لاره ده | بیشکه مونږ نصیحت قبلونکو خلقو ته

الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَذَّكَّرُونَ ۝ لَهُمْ دَارُ السَّلَامِ عِنْدَ رَبِّهِمْ

آیتونه |دپاره دهغه قوم|چی نصیحت قبلوی |دي دهغوئ دپاره |کوردسلامتیا | په نزدرب دهغوئ

خپلي نښي په تفصیل سره بیان کړی دی | دوئ دپاره د خپل رب سره د سلامتیا کور (جنت) دي

وَهُوَ وَلِيُّهُمْ بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ۝

اوهغه|دوست دهغوئ دي|په سبب دهغي عمل | چي وو هغوئ| چی کوؤ به ئي |

اوددوی د نیک عمل په وجه الله ﷻ ددوئ ملګري دي|..

قوله تعالی:: لَهُمْ دَارُ السَّلَامِ

**قرآن پاک صراط مستقیم اوجنت دسلامتئ کوردي**:-الله ﷻ چه کله نی ددي ګمراهانو ذکراوکړونو اوس د دین او هدایت شرف ښائی او فرمانی ستاسود رب لاردغه نیغه لارده.﴿مستقیما﴾ بنابرحال منصوب دي. یعنی دا دین اي محمد ﷺ چه مونږ تاته درکړیدي دا د دي وحی په ذریعه دي کوم ته چه قرآن وائی اوهم دغه صراط مستقیم دي.لکه چه حضرت علي ؓ دقرآن په تعریف کښي فرمانی هغه صراط مستقیم دي حبل الله المتین دي، ذکر حکیم دي.[1] او مونږ د قرآن آیاتونه ډیر په تفصیل اووضاحت سره پیش کړی دي اودي نه هغه خلق فائده اوچتولي شي چاته چه عقل او فراست حاصل وی چه د الله ﷻ او دهغه د رسول ﷺ په خبروکښي نیازمندانه غوراوفکر کوی اود پوهیدلو کوشش کوی. د هغوی د پاره د قیامت په ورځ جنت دارالسلام دي. جنت ته د دارالسلام نوم په دي وجه ورکړي شو لکه څنګه چه د سلامتئ په لار دلته روان دی د قیامت په ورځ به هم د سلامتئ کور هغوی ته ملاویږی. الله ﷻ د هغوئ حافظ ناصر او موید دي خکه چه هغوی به نیك عمل کولو.

وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ۚ يَا مَعْشَرَ الْجِنِّ قَدِ اسْتَكْثَرْتُمْ

چی جمع به کړی دا خلق | ټول |چی اے ډلي | دپیریانو |په تحقیق سره |دیر بي لاري کړی دی تاسو

الله ټول مخلوق راجمع کړی| (نوپیرانوته به اووائی)چي اني دپیریانوډلي تاسو خو د انسانانو ډیرخلق ګمراه کړی ود

مِنَ الْإِنْسِ ۖ وَقَالَ أَوْلِيَاؤُهُمْ مِنَ الْإِنْسِ رَبَّنَا اسْتَمْتَعَ بَعْضُنَا بِبَعْضٍ

دانسانونه |اواوبه وائی |دوستان دهغوئ |دانسانونه | اے ربه زمونږه|فائده واغستله| خینوزمونږ خینونورو باندي

|اوبه انسانانو کښي چي څوک دپیریانوملګری وی| هغوئ ته به اووائی اني زمونږ ربه مونږ دیوبل نه ښه فائدي اخستي وي

[1] ترمذی کتاب فضائل القرآن باب ماجاء فی فضل القرآن:۲۹۰۶، دارمی:۴۳۵/۲.

| وَّبَلَغۡنَآ | اَجَلَنَا | الَّذِيۡٓ | اَجَّلۡتَ | لَنَا ؕ | قَالَ | النَّارُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او اورسیدو مونږه | نیتې زمونږ ته | هغه | چې مقرر کړې وه تا | دپاره زمونږه | اوبه وائی (الله) | اور |

اوس خوهغه نیتې ته راورسیدو چې تازمونږ دپاره مقرر کړې وه | الله ﷻ به ورته او وائی چې څې:

| مَثۡوٰىكُمۡ | خٰلِدِيۡنَ | فِيۡهَآ | اِلَّا | مَا | شَآءَ اللّٰهُ ؕ | اِنَّ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| خانې دې ستاسو | همیشه به اوسئ (تاسو) | په هغې کښې | مګر | هغه | چې او غواړې الله | بیشکه |

ستاسو دتهولوخائې دوزخ دې | همیشه په هغې کښې اوسیږئ | مګرهغه چې د الله ﷻ خوښ شي (نومعاف به کړي)

| رَبَّكَ | حَكِيۡمٌ | عَلِيۡمٌ ۝ |
|---|---|---|
| رب ستا | دحکمت خاوند دې | اوپوهه دې |

بیشکه ستارب دحکمتونو خاوند اوپوهه دې |

**قوله تعالی:: رَبَّنَا اسۡتَمۡتَعَ بَعۡضُنَا بِبَعۡضٍ**

**دانسان اوپیرې دیوبل نه فائده اوچتول اودهغې انجام:** ارشاد دې چه اې محمد ﷺ! هغه ورځ یاده کړه چه کله الله ﷻ دهغه پیریانواو شیطانانو اود هغوی انسانی اولیاؤ د کومو چه دوی په دنیاکښې عبادت کولو اوهم هغوی سره ئې پناه اخستله اود دنیا دتمتعاتوپاره کښې یوبل ته وحی لیږلې دا ټول به راجمع کړې اوهغوی ته به اوفرمائی چه اې د پیریانو او شیطانانوډلې تاسو انسانان ډیر اوغولول. لکه چه فرمائی اې بنیادمو! ما تاسو نه وعده نه وه اخستې چه دشیطان عبادت مه کوئی خکه چه هغه ستاسو سخت دښمن دې او زما عبادت کوئی هم دغه صراط مستقیم دې.اې خلقو! تاسو کښې ډیرې لوئ ډلې دې شیطانانوګمراه کړې دی،آیا اوس به هم تاسوته عقل نه راځي([1])اودهغوی انسانی دوستان به وائی اې ربه! بې شکه ستا خبره صحیح ده. مونږ کښې هریو دبل نه نفع حاصلوله. حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائی چه دا نفع وه چه شیطان به حکم ورکولو او دې نادان انسان به عمل کولو. ابن جریج رحمه الله وائی چه د جهالت په زمانه کښې به یو سړې سفرکولو او په یوه وادئی کښې به چرته غلط شو نو ونیل به ئې چه د دې وادئی د ټولونه د لوئ پیرې پناه اخلم دا به وه د دې خلقو نفع. نو د قیامت په ورځ به هم د دې عذرپیش کوی.اود پیریانود انسانانونه فائده اوچتول دادی چه انسان به دهغوی تعظیم کولواود هغوی نه به ئې امداد غوښتلواود انسانانو نه به هغوی ته عزت ملاویدلو نو هغوی به ونیل چه مونږ د پیریانو اوانسانانو سرداران یو او تا چه زمونږ دپاره کوم وخت ګرځولې وو هغه وعدې ته مونږ اورسیدلو د دې نه مراد مرګ دې

**د الا ماشاء الله مطلب**- نو الله ﷻ به اوفرمائی اوس دوزخ ستاسو اوستاسو د دوستانو ځائې دې په کوم کښې چه به تاسو د همیشه د پاره ینی.بیا چه الله ﷻ څه غواړې کوی به. بعضې وائی چه د استثناء معنی برزخ طرف ته د رجوع کولوده. او بعضې وائی چه دامووده د دنیاطرف ته رد دې او بعضو هغه خبرې کړې د کومې بیان چه به په سورة هود کښې راځی. کوم ځائې چه الله ﷻ فرمائیلی چه هغوی به په دوزخ کښې دهمیشه د پاره وی ترکومې چه زمکه او آسمان وی. اوکه دې نه علاوه څه بل څه اوغواړی نودهغه مرضی ده او هغه خو چه کومه اراده کوی خپله اراده په عمل کښې د راوستلو حق لری([2]) د دې آیت تفسیر په دې آیت سره کیږی چه دوزخ ستاسو ځائې دې په کوم کښې چه به د همیشه د پاره ینی

---

[1]) ۳۶یسین: ۶۲-۶۳

[2]) ۶الانعام: ۱۰۷.

مګر هغه چه څه الله ﷻ اوغواړي. دا يوداسې ايت دی چه چاته هم دا سزاوار نه دی که د الله ﷻ د مخلوق باره کښې په الله ﷻ باندې څه حکم اولګوي او څوك جنتي يا دوزخي اوګرځوي.

وَكَذَٰلِكَ نُوَلِّي بَعْضَ الظَّالِمِينَ بَعْضًا بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴿١٢٩﴾

اوهمدارنګې|دوستان به کړو مونږ|ځينی ظالمان په ځينو|په سبب دهغې کارونو|چې ووهغوئ|چې کول به ئې

اودغه شان به مونږ بعضې ظالمان د بعضې نوروسره دخپلوعملونو په وجه ملګري کړو

قوله تعالى:: وَكَذَٰلِكَ نُوَلِّي بَعْضَ الظَّالِمِينَ بَعْضًا

**ظالم د ظالمانو او مومن دمومنانو دوست دی:** الله ﷻ خلقوته چه څوك يو شان اعمال لري په خپل مينځ کښې دوستان جوړوي. نومومن دوست دی دمومن که هغه هرځائې کښې وی اوهرڅنګه وی. اوکافر دوست دی دکافر که هغه هرچرته وی اود هرذات اونسب والاوی. ايمان د خواهشاتو او ښکاراؤ څيزونو نوم نه دی. مالك بن دينار رحمه الله وئيلې دی چه ماپه زبورکښې لوستلی دی چه الله ﷻ فرمائي چه زه به دمنافقانو بدله هم د منافقانوپه ذريعه اخلم او بيا دهغې نه پس دټولو منافقانونه اودا په قرآن کښې هم دی. د الله ﷻ ارشاد دی چه مونږ دغه شان يو ظالم د بل ظالم دوست جوړوو يعنی د پيريانو ظالمان د انسانانو ظالمانو دوستان جوړوو. اوچه څوك دالله ﷻ دذکر نه غافل شی نومونږپه هغه باندې يو شيطان مقرر کړو او هغه هميشه د پاره هغه سره وی[1]

د ابن مسعود رضي الله عنه نه په يو مرفوع حديث کښې روايت دی چا چه د ظالم امداد اوکړو نو هم هغه مونږ په هغه باندې مسلط کوو[2]داحديث غريب دی. يو شاعر وئيلی دی چه يو لاس داسې نشته چه د هغه د پاسه د الله ﷻ لاس نه وی او څوك ظالم داسې نشته چه د هغه بل ظالم سره معامله نه وی. د آيت مبارك معنی دا شوه چه څنګه مونږه د دې نقصان موندونکو انسانانو دوستان هغوی غولونکی پيريان شيطانان جوړکړل دغه شان د ظالمانونه بعضې د بعضو دوست جوړوو او بعضې په بعضو باندې هلاك کوو او مونږ دهغوی د ظلم سرکشنی او بغاوت بدله د بعضو نه بعضوله ورکوو.

يَا مَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ أَلَمْ يَأْتِكُمْ رُسُلٌ مِنْكُمْ يَقُصُّونَ

اے ډلې دپيريانو |اودانسانانو | ايا نه وو راغلی تاسو ته | رسولان | ستاسو نه | چې لوستل

انې د انسانانو او پيريانو ډلو! آياتاسو ته ستاسو نه پيغمبران نه وو راغلی |........ بيانول به ئې

عَلَيْكُمْ آيَاتِي وَيُنْذِرُونَكُمْ لِقَاءَ يَوْمِكُمْ هَٰذَا ۚ قَالُوا

به ئې زما ايتونه درته | اويرولې ئې تاسو | دملاقاته |دورځې ستاسونه|چې داده| نواوبه وائی هغوئ

په تاسوباندې | ايتونه زما|اوتاسو به ئې د نن ورځې دملاقات نه يرولې| هغوئ به اووائی

شَهِدْنَا عَلَىٰ أَنْفُسِنَا ۖ وَغَرَّتْهُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا

ګواهی کوؤ مونږه | په ځانونو خپلو باندې| اوپه دوکه کښې اچولی دی دوئ لره | ژوند ددنيا

چې مونږ په خپلوځانونوګواهی کوو| نن ورځ خودوئ ددنياژوندپه دهوکه کښې اچولی دی

[1]) ٤٣ الزخرف:٣٦.

[2]) تاريخ دمشق الابن عساكر:٣/٣٦

| كٰفِرِيْنَ۝ | كَانُوْا | اَنَّهُمْ | عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ | وَشَهِدُوْا |
|---|---|---|---|---|
| کافران | وو | چې بېشکه هغوی | په خانونو خپلو باندې | او گواهي به او کړي هغوی |
| خو په دغه ورځ به په خپلو خانونو پخپله گواهي کوي چې دوی کافران وو | | | | |

قوله تعالى: يٰمَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ اَلَمْ يَاْتِكُمْ رُسُلٌ مِّنْكُمْ
**دپیریانو پیغمبری نه ده راغلې:**-دقیامت په ورځ به کافران د کفر اقرار کوي. الله ﷻ دلته کافرانو پیریانو اوانسانانو له تنبیه ورکوي چه مونږ به دقیامت په ورځ دهغوی نه تپوس کووچه آیازمونږ رسولانو تاسو سره د نبوت حق اداکړې وو. دا د تپوس طريقه ده چه دخپلې خبرې ثابتولود پاره اختیارولې شي. یعنی اې پیریانواوانسانانوتاسوکښې رسول نه وو راغلې.رسولان صرف په انسانانوکښې پیداشوی پیریانو کښې نه دی. ابن عباس ﷺ فرمائي چه رسول صرف په بنیادموکښې وی او په پیریانو کښې صرف ویرونکی وی چه د الله ﷻ د عذاب نه ویرول کوي. د ابن مزاحم خیال دې چه په پیریانوکښې هم رسول وی اوبه خپله دعوی کښې هم د دې آیت نه دلیل راوړي. خویه دې خبره غور پکاردې خکه چه دا څه يقيني خبره نه ده كه چرته هم په يو آيت كښې د دې څيز صراحت نشته د زيات نه زيات احتمال دې چه عدم تصریح آیت ربانی نه دا دلیل دې چه فرمائي ﴿مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ يَلْتَقِيٰنِ۝ بَيْنَهُمَا بَرْزَخٌ لَّا يَبْغِيٰنِ۝ فَبِاَيِّ اٰلَاۤءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ۝﴾بیا فرمائي﴿يَخْرُجُ مِنْهُمَا اللُّؤْلُؤُ وَالْمَرْجَانُ۝﴾او ښکاره خبره ده چه لو لو اومرجان په تریخ سمندرکښې دننه وی په خوږسمندرکښې نه وی. لکه څنگه چه لو لو او مرجان خوږ او تریخ دواړو سمندرونوطرف ته منسوب کړو بالکل هم دغه شان نی رسولان دواړوانسانانو او پیریانو کښې شمیر کړل. ابن جریر ﷫ هم بالکل دغه جواب ورکړې دې. اود دې خبرې دلیل چه رسول صرف په انسانانوکښې وی د الله ﷻ دا قول دې ﴿اِنَّاۤ اَوْحَيْنَاۤ اِلَيْكَ كَمَاۤ اَوْحَيْنَاۤ اِلٰى نُوْحٍ وَّالنَّبِيّٖنَ مِنْۢ بَعْدِهٖ﴾ الی قوله ﴿ رُسُلًا مُّبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ لِئَلَّا يَكُوْنَ لِلنَّاسِ عَلَى اللّٰهِ حُجَّةٌۢ بَعْدَ الرُّسُلِ﴾ اودابراهیم ﷵ د ذکر سره متعلق د الله ﷻ ارشاد﴿وَجَعَلْنَا فِيْ ذُرِّيَّتِهِ النُّبُوَّةَ وَالْكِتٰبَ﴾نو دابراهیم ﷵ نه پس مونږ نبوت اوکتاب دهغه اولاد کښې وگرخولو اوڅوك هم ددې خبرې قائل نه دی چه د حضرت ابراهیم ﷺ نه وړاندې نبوت په پیریانوکښې وو اود هغوی د مبعوث کیدونه پس منقطع شو. غرض دا چه په پیریانوکښې د نبوت ثبوت نه د ابراهیم ﷵ نه وړاندې ثابت دې او نه د هغه نه پس. اوفرمائي چه تانه اول مونږ کوم رسولان لیږلې وو هغوی هم خوراك كولو او په بازار کښې هم گرخیدل راگرخیدل هم. او فرمائي چه تانه وړاندې مونږ څومره رسولان لیږلې وو هغوی هم د دغه خلقو وطن دار وو [1]

**پیریان په باب رسالت کښې د انسان تابع دی:**:او معلوم دی چه پیریان په دې باب رسالت کښې د انسان تابعدار دی اود دې د پاره د پیریانو متعلق خبر ورکولو سره ارشاد دې چه د پیریانو یوه ډله مونږ ستا طرف ته راوگرخوله چه هغوی قرآن اوري او کله په مجلس کښې حاضر وی نو وائي چه چپ شئ چه واوري او چه کله قرآن ختم شي نو خپل قوم طرف ته لاړشي او د الله ﷻ نه هغوی اوویروی. او وائي چه اې قومه مونږ یو کتاب اوریدلې چه د موسی ﷵ نه پس نازل شوې او چه د توریت تصدیق کوي او د حق خبرو اوصراط مستقیم طرف ته هدایت کوي. اې خلقو د الله ﷻ طرف ته رابلونکی ته لبیك اووايئ په هغه باندې ایمان راوړئ الله ﷻ به ستاسو گناهونه معاف کړي او د سخت عذاب نه به تاسو له خلاصې درکړي. اوکه چا د الله ﷻ داعی ته لبیك اونه وئیل اوکافرياتې شو نو هغه به الله ﷻ څه عاجز نه کړې شي اود الله ﷻ نه علاوه بل هیڅ څوك دهغه ولی نه شي كیدې. داسې خلق به په لويه

---

[1] ۱۲یوسف: ۱۰۹.

گمراهئ کښې وی(۱)د ترمذی رحمه الله حدیث دی چه حضور ﷺ د سورت رحمن تلاوت اوفرمائیلو او په دې کښې دا آیت اولوستلو ﴿سَنَفْرُغُ لَكُمْ اَيُّهَ الثَّقَلٰنِ﴾او وئې فرمائیل چه اې دانسانانو اوپیریانو ډلې آیا تاسو ته د الله ﷻ رسول نه وو راغلې چه زما آیاتونه به ئې تاسو ته لوستل او اورول اود نن ورځې د ملاقات نه ئې تاسو خبر کړې وئې نو هغوی به وائي چه مونږ اقرار کوو چه ستا رسولانو خپل تبلیغ مونږ ته رسولې او مونږ ئې ستا د ملاقات نه ویرولې وو او دائې هم خودلې وو چه دا د نن ورځ به خامخا راځي. او فرمائي د دنیا ژوند هغوی په دهوکه کښې اخته کړې وو. هغوی د دنیا په ژوندکښې د افراط او تفریط یعنې په کمې زیاتی کښې اخته شوې وو اود رسولانو تکذیب او د معجزاتو مخالف باندې هلاك شو ځکه چه د دنیا ژوند عیش او عشرت زیب او زینت او شهوتونوکښې راګیرشوی وو او دقیامت په ورځ به هغوی پخپله پخپلونفسونو باندې ګواهی ورکوی چه مونږ انکاریان یعنې کافر وو.

| ذٰلِكَ | اَنْ لَّمْ يَكُنْ | رَّبُّكَ مُهْلِكَ | الْقُرٰى | بِظُلْمٍ |
|---|---|---|---|---|
| داګواهی ځکه اخلې چې ثابته شی | چې نه دې | رب ستا هلاکونکې | دکلو | په ظلم سره |
| دا ځکه (چې معلومه شی) چې ستا رب د کلې خلق په ظلم سره نه هلاکوی په داسې حال کښې چه | | | | |
| وَّاَهْلُهَا | غٰفِلُوْنَ ۝ | وَلِكُلٍّ | دَرَجٰتٌ | مِّمَّا |
| اوحال دا چې اوسیدونکې | دهغې ناخبره وی | اوهر یولره | درجې دی | دهغه عمل نه |
| د هغې اوسیدونکی غافل وی ...........اوهر چا ته به دخپل عمل مطابق درجې | | | | |
| عَمِلُوْا | وَمَا رَبُّكَ | بِغَافِلٍ | عَمَّا | يَعْمَلُوْنَ ۝ |
| چې کړې وی هغوی | اونه دې رب ستا | ناخبره | دهغه عمل نه | چې کوی ئې هغوی |
| ورکولې شی اوستارب ددوئ دعملونونه بې خبره نه دې | | | | |

قوله تعالٰى: ذٰلِكَ اَنْ لَّمْ يَكُنْ رَّبُّكَ مُهْلِكَ الْقُرٰى

**په یو ځائ باندې عذاب د اتمام حجت نه پس راځي:-** الله ﷻ فرمائي چه داسې نه کیږی چه ستا رب کلې هلاك کړی او په ظلم باندې هلاك کړی په داسې حالت کښې چه هغه خلق بالکل په غفلت کښې وی. نه بلکه رسولان مواولیږل اوکتابونه مو نازل کړل اود پیریانو او انسانانوعذرونه موختم کړل دې د پاره چه څوك په ظلم سره اونه نیولې شی اوهغه ته د توحیددعوت نه وی رسیدلې.مونږ د خلقو هیڅ عذر باقي پرینخودو اوکه مونږ په قومونو باندې عذاب لیږلې هم دې نو د رسولانولیږلو نه پس او دحجت د پوره کولونه پس لکه چه فرمائي چه یوکلې داسې نه دې چرته چه مونږ څوك ویرونکې رسول د خپل طرف نه ته نه وی لیږلې. اوفرمائي چه په هر قوم کښې خپل رسول لیږلې دې چه هم دالله ﷻ عبادت کونې اود شیطان نه بچ شئې لکه چه فرمائي مونږ کله هم په چا باندې عذاب نازلونکې نه یوترکومې چه هغوی ته رسول اونه لیږو(۲) اوفرمائي چه کله په دوزخ کښې خلق ورغوڅه کړې شی نودهغې مقرړې فرښتې به تپوس کوی چه آیاڅوك د الله ﷻ ویرونکې تاسوله نه وو راغلې؟هغوی به وائي چه او ضرور راغلې وو خومونږ هغوی دروغ ګڼړلې وو(۳) ددې موضوع متعلق ډیر آیاتونه دی.

---

[1] ٤٦) الاحقاف: ٢٩، ٣٢.
[2] ١٧)الاسراء: ١٥.
[3] ٦٧) الملك: ٨-٩.

**په ظلم کښې دوه احتماله:**:امام ابوجعفر رحمه الله فرمائي چه دالله ﷻ قول دي﴿بِظُلۡمٖ﴾ ددوو وجودو احتمال لري.يو خوداچه داخبره په دې وجه ده چه دالله ﷻ داطريقه نه ده چه يو قوم دهغوی د شرك په وجه داسې هلاك کړي چه هغوی ته د خپل شرك خبر هم نه وي يعنی هغه په عذاب ورکولو کښې کله هم تيزی نه کوي ترکومې پورې چه هغوی ته رسول اونه ليږي چه په عذاب باندې خبر کړي اود الله ﷻ حجت پوره کړي اوداخرت د عذاب دورخې نه ئې اونه ويروي.که هغه خوك په غفلت کښې رانيول نوونيل به ئې چه مونږ له خوخوك بشير اونذير نه وو راغلي(١)اودونمه وجه داچه الله ﷻ فرمائي چه هغه دوی بغير د خبرولونه اود رسولانو اوآياتونوسره دنصيحت کولونه بغير هلاك کوی نه ګڼي نوپه هغه باندې به ظلم کول لازم راتلل او الله ﷻ خوېخپلو بنديګانوباندې ظلم نه کوي.دې نه پس ابوجعفر رحمه الله هم رومبئ وجهې ته ترجيح ورکوی او په دې کښې هيڅ شك نشته چه هم دغه وجه قوی او غوره ده. والله اعلم.

**درجې په قدر د عملونو دي:**-د الله ﷻ ارشاد دي﴿وَلِكُلّٖ دَرَجَٰتٞ مِّمَّا عَمِلُواْ﴾ يعنی دهرنيك او بدعمل کونکی دعمل په لحاظ ډيرې مرتبې اومنزلونه دی چه د چا څنګه عمل دې دهغې نتيجې پورې هغه رسوی. که عمل دخير وی نو نتيجه د خير پورې او که عمل بد وی نو نتيجه د بدې پورې. او دا هم احتمال دې چه دا مطلب وی چه ددې کافرانو پيريانو او انسانانو ډيرې درجې دی اود هرکافر دپاره دهغه د حسب او ګناه درجې اومنازل دی.لکه چه فرمائی دهريو دپاره دوه چنده او درې چنده عذاب دې اوفرمائی چه کومو خلقو کفر اوکړو اود الله ﷻ د لارې مستقيم طرف ته نور راتلونکی خلق ئې منع کړل مونږ به په عذاب باندې عذاب د هغوی دپاره زياتوو. خکه چه هغوی پخپله هم کفر کولو او خلق ئې هم د کفر په لار راوستل اوفساد به ئې خورولو.او الله ﷻ خو دعمل کونکی د عمل نه غافل نه دې. دا خلق د الله ﷻ په علم کښې دی کله چه دوی د هغه طرف ته واپس کيږي نو دوی به سزا سره مخ کيږي.(٢)

| وَرَبُّكَ ٱلۡغَنِيُّ | ذُو ٱلرَّحۡمَةِۚ | إِن يَشَأۡ | يُذۡهِبۡكُمۡ | وَيَسۡتَخۡلِفۡ |
|---|---|---|---|---|
| اورب ستا بې نيازدې | خاوند درحمت دې | که هغه غواړي | انولرې به کړي تاسو | اوخليفه ګان به کړی |
| اوبيشکه ستارب بې پرواه دې اودرحمتونو خاوند دې که هغه اوغواړي نوتاسوبه فنا کړي او ستاسونه | | | | |
| مِنۢ بَعۡدِكُم | مَّا | يَشَآءُ | كَمَآ أَنشَأَكُم | مِّن ذُرِّيَّةِ |
| روستوستاسونه | هغه خوك | چې غواړي هغه | لکه څنګه چې هغه پيدا کړي يې تاسو | داولاده |
| پس چې څوک خوښوی هغوی به ستاسو په ځانې راولی \| لکه څنګه چې ئې تاسو د بل | | | | |
| قَوۡمٍ | ءَاخَرِينَ | إِنَّ | مَا تُوعَدُونَ | لَأٓتٖۖ |
| دقوم | بل نه | بيشکه | هغه څيز چې ستاسوسره ئې وعده کيږی | خامخاراتلونکي دې |
| قوم دنسل نه پيداکړی يې \| تاسوسره چې د کوم څيزوعده شوې ده هغه يقينی طور راتلونکې دې | | | | |
| وَمَآ أَنتُم | بِمُعۡجِزِينَ | قُلۡ | يَٰقَوۡمِ | ٱعۡمَلُواْ | عَلَىٰ مَكَانَتِكُمۡ |
| اونه يئ تاسو | عاجزه کونکی | اووايه | اے قومه زما | عمل کوئ تاسو | په ځائې خپل باندې |
| اوتاسو الله ﷻ نشئ عاجزکولې \| اووايه چې انې زما قومه ! پخپله طريقه عمل کوئ | | | | | |

(١) ٥ المائده: ١٩.
(٢) ١٦ النحل: ٨٨.

| إِنِّيْ | عَامِلٌ ج | فَسَوْفَ | تَعْلَمُوْنَ لا | مَنْ | تَكُوْنُ |
|---|---|---|---|---|---|
| بيشکه زه | هم عمل کونکي يم | نو ډيرزربه | معلوم شي تاسو ته | چې څوك دي | چې وی به |
| اوزه هم پخپله طريقه عمل کوم | زربه درته معلومه شي چې د چا دپاره به | | | | |
| لَهٗ | عَاقِبَةُ | الدَّارِ ط | اِنَّهٗ | لَا يُفْلِحُ | الظّٰلِمُوْنَ ۝ |
| هغه لره | انجام | داخرت | بيشکه شان دادي | چې نشي موندلي خلاصي | ظالمان |
| ښه انجام د اخرت وی ...... بيشکه چې کوم خلق ظالمان دی هغوئ هيچري خلاصي نشي موندي | | | | | |

قوله تعالى: وَرَبُّكَ الْغَنِيُّ

**الله ﷻ دټول مخلوق نه بې نيازه دي:** ارشاد دي اې محمد ﷺ استا رب دټول مخلوق نه د ټولو وجوهاتو نه غني دي په ټولوحالاتوکښې ټول دهغه محتاج دی. دې نه علاوه هغه رحيم اوکريم هم دي لکه چه فرمائي ﴿إِنَّ اللّٰهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ۝﴾ که ته دهغه د اوامرو او نواهي مخالفت اوکړې نوکه هغه اوغواړي نو تابه هلاك اوتباه بربادکړی او بيا چه کوم قوم غواړي ستاسو په ځائ به ني آباد کړی دي د پاره چه دا دونم قوم دهغه حکم منونکې شي. لکه څنګه چه الله ﷻ تاسو د يو بل قوم د اولاد نه پيدا کړي. هغه په دې خبره باندې قادر دې اوهغه ته دا کار آسان دې لکه څنګه چه هغه اولني قرون هلاك کړل او بيا ني روستوني قومونه راوستل او آباد ني کړل. دغه شان دا قوم تباه کول او بل قوم راوستلو باندې قادر دې[1] اوفرمائي اې خلقو تاسو د الله ﷻ محتاج يئي دهغه فقيران يئي غني اوحميد صرف الله ﷻ دي که هغه غواړي نو تاسو به فناکړی او يوبل مخلوق به پيدا کړی او دا په الله ﷻ باندې ګران نه دی. ([2]) الله ﷻ فرمائي که تاسو دهغه نه مخ اړوئي نو ستاسو په ځائ به نور قومونه بدل کړی او بيا به ستاسو ذکر هم باقي پاتې نه شي. ابان بن عثمان د دې آيت متعلق ليکي چه ذريت يعني اولاد اصل ته هم وائي او ذريت نسل ته هم وائي

**الله ﷻ لره څوک هم نشي عاجز کولې:** اودالله ﷻ ارشاد ﴿إِنَّ مَا تُوْعَدُوْنَ لَاٰتٍ ۙ وَّمَآ اَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ ۝﴾ يعني اې محمد ﷺ! هغوی ته خبرورکړه چه دامرمعاد سره متعلق دکومې خبرې هغوی سره وعده کړې ده هغه به خامخا کيږی. تاسو الله ﷻ عاجز کولې نه شې هغه خو په دې خبره باندې قادر دې چه تاسو بيا راژوندی کړی که تاسو خاوړې شوې ولې نه نی او ستاسو هډوکی سخاشوې ولې نه وی. نبی کريم ﷺ فرمائي اې بنيادمه! که ته پوهه لرې نو خپل ځان په مړوکښې شميرکړه. په الله ﷻ قسم د کومې خبرې چه تاسو سره وعده کړې ده هغه خبره خو به کيږی. تاسو په دې غالب راتلې نه شئ اودې نه بچ کيدې نه شئ. ([3])

**اخري فتح او غلبه به د مسلمانانو وی:** بيائی فرمائي چه اې خلقو! تاسو په خپل ځائ عمل کوئی او زه پخپل ځائ کوم او دا خبره به تاسو ډير زر د نزدې نه اووينئی. دا ډير سخت وعيد او زبردست تهديد دې. يعني که ګمان کوئی چه تاسو په صحيح لار نی نو هم په دغه څنی او زه هم په خپله خوښه او لار څم. لکه چه فرمائي ايمان نه راوړونکوته اووايه چه تاسو هم خپله کوئی او زه هم خپله کوم. تاسو هم زما انتظارکوئی اوزه هم ستاسو انتظارکوم([4]) نزدې به تاسو ته معلومه شی چه د عاقبت ښيګړه د چا د پاره ده. ياد ساتئی ظالمان به چرې هم خلاصې نه بيامومی. الله ﷻ خپل رسول ﷺ سره کړې وعده پوره

---

[1]) ٤ النساء: ١٣٣.

[2]) ١٤ ابراهيم: ١٥-١٦.

[3]) شعب الايمان: ١٠٥٦٤، حليه الاولياء: ٩١/٦، قصر الامل لابن ابى الدنيا: ١/٢/١.

[4]) ١١هود: ١٢١.

کړه دهغه دپاره ئی بې شمیره ښارونه فتحه کړل هغه ئی په ملکونوباندې قابض او متصرف جوړ کړواو مخالفت کونکی ئی سرد لاندې راګذار کړل. مکه ئی د نبی کریم ﷺ د پاره فتحه کړه او په ټولو مکې والاباندې ئی هغه غالب کړو اوپه ټول جزیره عرب باندې ئی دهغه حکم نافذ کړو او دغه شان په یمن اوبحرین کښې هم. اوبخپله هم دهغه په ژوندکښې دا هرڅه اوشو. اود حضورﷺ د وفات نه پس د خلفاء راشدین رضی الله عنهم اجمعین په زمانه کښې امصار او اقالیم هم فتح شو.لکه چه فرمائی چه الله ﷻ لیکلی دی چه زه او زما رسول به غالب راځی الله ﷻ قوی او عزیز دې.(۱)

**الله ﷻ دخپل نبی ﷺ اومؤمنانو مدد کوی:-** اوفرمائی چه مونږ به دخپلورسولانو په دنیاکښې هم او آخرت کښې هم امدادکوو په کومه ورځ چه به ظالمانو ته د هغوی معذرت هیڅ فائده نه ورکوی. په هغوی لعنت دې او دوزخ دهغوی ځایٔ دې. (۲)اوفرمائی چه وړاندې ذکر شوی زبورکښې لیکلی وو چه زمونږ د زمکې وارثان به زمونږ نیکان بندیګان وی(۳)اودرسولانو متعلق خبرورکولې شی چه مونږ رسولانوته وحی لیږلې وه چه دا کافران ظالمان به مونږ هلاك کړو او بیا به په دنیا کښې مونږ تاسو خلق آباد کړو.دا زمونږ مهربانی د هغه خلقو د پاره ده څوك چه مونږ نه ویرېږی. اوفرمائی چه ستاسو ایماندارانو او صالحانوسره الله ﷻ وعده کوی چه په زمکه کښې به الله ﷻ هغوی خپل خلیفګان جوړوی. لکه څنګه چه ئی د هغوی نه وړاندې خلق خپل خلیفه ګان جوړ کړی وو او چه کوم دین هغه خوښ کړې وو په هغې باندې به هغوی روان کړی او د ویرې نه پس به د هغوی ژوند په امن سره بدل کړی خکه چه هغوی زما عبادت کوی او شرك نه کوی (۴) او الله ﷻ امت محمدیهﷺ ته هم په دې سرفرازئی سره خاص امتیاز وربښلې دې د هغه اول او آخر کښې شکر دې.

| وَجَعَلُوْا | لِلّٰهِ | مِمَّا | ذَرَاَ | مِنَ الْحَرْثِ | وَالْاَنْعَامِ |
|---|---|---|---|---|---|
| اومقرر کړی ده دوی \| الله لره \| دهغې نه \| چې پیدا کړی دی هغه \| دفصلونو نه \| اودڅاروو نه \| | | | | | |
| اودوی دالله ﷻ دپاره دهغه په ........ پیدا کړو........ فصلونو .......... اوڅاروو کښې | | | | | |

| نَصِيْبًا | فَقَالُوْا | هٰذَا | لِلّٰهِ | بِزَعْمِهِمْ | وَهٰذَا |
|---|---|---|---|---|---|
| یوه حصه \| نو وانی هغوی \| داحصه \| الله لره ده \| په ګمان خپل سره \| اوداحصه | | | | | |
| یوه حصه مقرر کړې ده \| نو پخپل ګمان کښې وانی چې دا یوه حصه دالله ﷻ شوه او دایوه حصه | | | | | |

| لِشُرَكَآئِنَا ۚ | فَمَا | كَانَ لِشُرَكَآئِهِمْ | فَلَا يَصِلُ |
|---|---|---|---|
| دپاره دشریکانو زمونږه ده \| نوهغه حصه \| چې وی دپاره دشریکانودهغوی \| پس نۀ رسیږی | | | |
| زمونږ دشریکانو شوه \| نوبیا چې کومه حصه ئې شریکانو دپاره مقرر کړې وی \| نو هغه هیڅرې | | | |

| اِلَى اللّٰهِ ۚ | وَمَا | كَانَ لِلّٰهِ | فَهُوَ | يَصِلُ | اِلٰى شُرَكَآئِهِمْ ؕ | سَآءَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الله ته \| اوهغه حصه \| چې وی دپاره دالله \| نو هغه \| رسیږی \| شریکانو دهغوی ته \| ډیربد دي | | | | | | |
| الله ﷻ ته نه رسی \| اوچې کومه ئې الله ﷻ دپاره مقرر کړې وی \| نوهغه ددوی شریکانو ته رسی | | | | | | |

(۱) ۵۸ المجادله: ۲۱.
(۲) ٤٠ غافر: ۵۱-۵۲.
(۳) ۲۱ /الانبیاء: ۱۰۵.
(۴) ۲٤/النور:۵۵.

| مَا يَحْكُمُوْنَ |
|---|
| هغه حکم اچي کوي ني هغوئ ا |
| دوئ څومره خرابي فيصلې کوي ا |

**قوله‌تعالى:: وَجَعَلُوْالِلّٰهِ**

**مشرکانوبه د الله سره د غيرالله حصه هم ويستله:**-دلته د اللهﷻ د طرف نه مشرکان ملامت کولې شي چا چه بدعتونه شرك اوکفر خورکړو اونورمخلوقات ني اللهﷻ سره شريك کړل حالانکه دهرڅيزخالق هم دغه يوالله پاك دې.ددې دپاره اوفرمائيلې شو چه داخلق دفصل د پيداوار اوڅارودنسل نه کوم چه پيدا کيږي نودهغې نه خو يوه حصه د اللهﷻ د نوم اوباسي اودخپل غلط ګمان په وجه وائي چه دا د اللهﷻ په نوم دى اودازمونږ د شريکانو په نوم دى خو چه کوم دشريکانو د نوم دى هغه خود اللهﷻ د پاره نه خرچ کوى اوچه کوم د اللهﷻ د نوم دى هغه د شريکانو په اغراضوکښې خرچ کوى.ابن عباسؓ ددې آيت په تفسيرکښې فرمائيلې چه دې درب دبندګانو به کله دزميندارنې يادباغونوکرکولو اوپيداوار اوميوې به حاصليدې نودهغې نه به ني څه قدرې حصه د اللهﷻ د پاره ګرځوله او څه د بتانو په نوم. نو چه کومه حصه به د بتانوپه نوم وه هغه به ني محفوظ کوله اود اللهﷻ د نوم څه حصه په هغې کښې وربريوځي يا څه تکليف وراورسي نوهغه به ني دبتانوپه حصه کښې شريکوله اوکه د بتانودمقرر شوې حصې نه به اوبه وراندې کيدې اوداللهﷻ حصې ته به رسيدې نو ونيل به ني داخوزمونږ د بت ده اود اللهﷻ د حصې ميوه يا پيداوار راپريوتلو يا به د بتانوحصه کښې يوځاځ کيدله نو ونيل به ني دا خود مستحقينو حصه ده او د بتانو په حصه کښې به ني يوځاځ کوله اود اللهﷻ د پاره به ني نه ورکوله اود اللهﷻ دحصې ګرځولې شوې اوبه به که وراندې کيدې او د بتانو دکرزمکه به ني خروب کوله نوداسې به ني کيدو ته پريخودل اوهغه به ني هم د بتانودپاره خاص کوله.اوبحيره، سائبه، حام او وصيله څناور به ني د بتانودپاره مخصوص کول او دعوى به ني کوله چه د اللهﷻ دنزديکت دپاره مونږ دهغې نه فائده حاصلول حرام ګڼړو.نو داپورتني آيت هم په دې مضمون رڼا اچوى.ابن زيد رحمه الله فرمائي که داللهﷻ د نوم يو څناور به وواو هغه به دوى حلالولو نوداللهﷻ دنوم سره به ني دبتانونوم هم اخستلو اوکه د بتانو نوم به ني په هغې باندې اخستې نه وو او صرف د اللهﷻ نوم به ني اخستې وو نو دا حلاله به ني نه خوړله اوکوم چه دبتانودنوم څناور به وو هغه حلالولوپه وخت کښې به ني د اللهﷻ نوم نه اخستلو او صرف دبتانونوم به ني اخستلودمشرکانوداتفسيم سراسرغلط وو..بيانى داآيت اولوستلو(سَآءَمَايَحْكُمُوْنَ) يعنى د هغوى څنګه خراب تقسيم دې.اول خو په تقسيم کښې هغوى غلطي اوکړه ددې دپاره چه الله ﷻ د هرڅيز رب دې اوخالق دې.اوبيا ني هغه فاسدتقسيم هم په خپل ځاځ قائم اونه ساتلو بلکه په هغې کښې ني هم دظلم او ناانصافئى نه کاروااخستلو لکه چه وني فرمائيل د اللهﷻ دپاره خوصرف لونړه ګرځوى اودخپل ځان دپاره دخپل خوښ کړې شوى حسب خامن ګرځوى انسان ډير ناشکره دې[1]اووني فرمائيل ستاسودپاره خامن اود اللهﷻ دپاره لونړه.دا ستاسوڅنګه غلط تقسيم دې.[2]

| لِكَثِيْرٍ | زَيَّنَ | وَكَذٰلِكَ |
|---|---|---|
| دپاره ډيرو | ابنائيسته ښکاره کړى دى ا | ا اوهم دارنګې |
| ا اودارنګ ډيرو مشرکانو په خيال کښې ددوئ | | |

[1] ۴۳الزخرف: ۱۵.

[2] ۵۳ النجم:۲۲.

| لِيُرْدُوهُمْ | شُرَكَاؤُهُمْ | قَتْلَ أَوْلَادِهِمْ | مِّنَ الْمُشْرِكِينَ |
|---|---|---|---|
| دپاره ددې چې هلاك كړي هغوئ | شريكانو دهغوئ | داولادخپل / وژل | د مشركانو |
| (جوړ كړي) شريكانو دوي ته خپل اولاد وژل ښائسته ښكاره كړي دي \| چې برباد ني كړي او چې | | | |
| وَلِيَلْبِسُوا عَلَيْهِمْ دِينَهُمْ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ | | | |
| اودپاره ددې چې شكمن كړي \| په هغوئ باندې \| دين دهغوئ \| اوكه چرې اغوښتلې الله | | | |
| دين پرې ګډ وډ كړي \| ......................او كه چرې الله ﷻ ته منظوره وې \| نو | | | |
| مَا فَعَلُوهُ فَذَرْهُمْ وَمَا يَفْتَرُونَ | | | |
| نۀ به وۀكړې هغوئ دا كار \| نو پرېږده هغوئ \| اوهغه چې دروغجوړوي | | | |
| داسې به ني نه كول \| نودوئ پرېږده چې پخپلو دروغو كښې پراته وي \| | | | |

قوله تعالى: زَيَّنَ لِكَثِيرٍ مِّنَ الْمُشْرِكِينَ قَتْلَ أَوْلَادِهِمْ

**د مفلسئ د ويرې نه اولاد قتل كول:-** الله ﷻ فرمائي څنګه چه شيطانانو هغوی ته دا خبره خوښه اوخودله چه د الله ﷻ دپاره د بتانونه جدا يوه حصه اوګرځوئي دغه شان د غريبئ د وجه نه خپل اولاد قتل كول اوياخپلې لونړه دسخرګنۍ درشتې دشرم نه ژوندی ښخول مستحسن جوړول.دهغوی شريكان شيطانان دی چه هغوی ته مشوره وركوی چه د مفلسئ د ويرې نه خپل اولاد خښ كړنی يا خو به نی نيت هم د هلاك كولو ووبا به نی دايو مذهبی خبره ګڼړله او دين په هغوی باندې شك من شوی وو لكه چه فرمائي كله به ورته اوونيلې شو ستا لور پيدا شوه نو د هغه مخ به د خفګان نه تور شو شكل به نی وران كړو اود دغه شرم د وجه نه به د خلقو نه پټيدلو([1])اولكه چه فرمائي څه جواب به وركوئي چه كله ژوندئ لور خښه كړې شوې نه د قيامت په ورځ تپوس اوكړې شی چه ته د كومې ګناه په بدله كښې قتل كړې شوې نی. ([2]) هغوی به په دې وجه هم اولاد قتل كولو چه هغوی به د مفلسئ ويرې راګيركړی وو اود هغوی په پاللوكښې دمال د خانع كيدلو ويره وه. دا ټول به د شيطانانو كارونه وو. بيا فرمائي كه چرې الله ﷻ غوښتل نو هغوی به داسې نه كول. يعنی چه څه كيږی دالله ﷻ په اراده كيږی په دې كښې دهغه حكمت تامه دې په دې باندې څوك اعتراض نه شی كولی.ته اې نبی ﷺ! هغوی هم پرېږده اود هغوی د دروغو خدايان هم. الله ﷻ به ډير زر ستاسو اودهغوی فيصله اوكړي.

| وَقَالُوا هَٰذِهِ | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| \| اووائي دوئ \| چې دا | | | | | |
| \| اودوئ دا هم وائي | | | | | |
| نَّشَاءُ | إِلَّا مَن | لَّا يَطْعَمُهَا | حِجْرٌ | وَحَرْثٌ | أَنْعَامٌ |
| چې غواړو مونږ | مګرهغه څوك | نه به خوری دا | محفوظ دی | اوفصلونه | څاروی |
| چې دا څاروی او داپټی منع دی دابه صرف هغه كسان خوری چې مونږ ني اوغواړو (داپابندی ني) | | | | | |

[1] ۱۶ النحل: ۵۸-۵۹.
[2] ۸۱ التكوير: ۸-۹.

بِزَعۡمِهِمۡ وَأَنۡعَٰمٌ حُرِّمَتۡ ظُهُورُهَا وَأَنۡعَٰمٌ

په گمان خپل سره| اوخيني خاروي دي| چي حرام كړي شوي دي| شاګاني دهغوي| اوخيني خاروي دي

پخپل گمان كښي (لګولي ده) اوداسي خاروي يې مقرر كړي دي| چي په هغې ني بارونه اوړل بند كړي دي| اوداسي خاروي

لَّا يَذۡكُرُونَ ٱسۡمَ ٱللَّهِ عَلَيۡهَا ٱفۡتِرَآءً عَلَيۡهِۚ سَيَجۡزِيهِم

چي نه يادوي نوم دالله| په هغې باندې| اودا تړول دروغ دی په الله باندې| ژر به بدله وركړي الله دوی له

چي په هغې دالله ﷻ نوم (دذبح كولو په وخت كښي) نه اخلي | دا صرف په الله ﷻ باندې دروغ تړي

بِمَا كَانُواْ يَفۡتَرُونَ۝

په سبب دهغې| چي وو | چي دروغ به ني تړل|

الله ﷻ به ډيرزر د دروغو سزا وركړي|

قوله تعالى: وَجَعَلُواْ لِلَّهِ مِمَّا ذَرَأَ مِنَ ٱلۡحَرۡثِ وَٱلۡأَنۡعَٰمِ نَصِيبٗا

**دمشركانو ځان نه جوړكړي حلال اوحرام:**-ابن عباس رضي الله عنه فرمائی چه دحجر معنی حرام ده يعنی هغه چه په صورت دوصيله حرام كړی وو.هغوی به ونيل دا خاروی اوفصل حرام دي زمونږ د مرضۍ نه بغير څوك دا نه شي خوړلې.دا تحريم اوسختی په خپل ځان باندې دشيطانانود طرف نه وه دالله ﷻ د طرف نه مقرر شوې نه وه.ابن زيد وانی چه د خپلو خدايانو په خاطر نی داحرام كړې وو.لكه چه فرمائی دا په تاسو څه چل اوشو چه كوم څيزونه الله ﷻ ستاسو رزق د پاره جوړكړی وو هغه تاسو په خپل ځان باندې حرام كړل او حرام مو حلال كړل. هغوی نه تپوس اوكړه چه آيا الله ﷻ تاسو ته داحكم دركړې وو يا داكه په الله ﷻ باندې د ځانه خبره تړنی[1] اوونی فرمائيل الله ﷻ سره د بحيره، سائبه، وصيله او حام هيڅ سند نشته. مګردا چه دا كافران په الله ﷻ باندې تهمت تړی او په هغوی كښې اكثر په هيڅ باندې هم نه پوهيږی[2] سدی رحمه الله وانی چه بحيره، سائبه، وصيله او حام خو هغه ځناور دی په كوم چه سورلی كول حرام كړې شوی وی يا دا چه هغه ځناور دی په كومو چه د الله ﷻ نوم نه شي اخستې نه د پيدا كيدو په وخت اونه دحلالولوپه وخت.ابووائل ونيلی چه آياتاسو پوهيږنی چه په دې آيت كښې په بعضو څارو باندې سوريدل حرام وو او په بعضوبه د الله ﷻ نوم نه يادېدلو دې نه كوم ځناور مراد دی. دې نه بحيره ځناورمراد دې په كومو چه به سواره حج له نه تلل،نه به په هغې سوريدل او نه به ني په هغې بوج اچولو او نه به ني د هغې پنی څكل او نه بی نسل زياتولو. دا تړول په الله ﷻ باندې كذب او افتراء ده. نه د الله ﷻ داحكم دې اونه د الله ﷻ د رضا ذريعه ده نو الله ﷻ به د دې افتراء هغوی ته بدله وركوی.

وَقَالُواْ مَا فِي بُطُونِ هَٰذِهِ

| اووانې دوی | هغه څه | چي په خيټو | ددې

| ..........او دوی وانی چي ددې څاروو په خيټه كښې

ٱلۡأَنۡعَٰمِ خَالِصَةٞ لِّذُكُورِنَا وَمُحَرَّمٌ عَلَىٰٓ أَزۡوَٰجِنَاۖ

څاروو كښې دی | دی دپاره دنارينو زمونږه | اوحرام كړي شوی دی | په ښځو زمونږه |

كوم بچي دې هغه خالص زمونږ دنارينوو دپاره دې | اوزمونږ په زنانو باندې حرام دې

[1] ۱۲يوسف: ٥٩.
[2] ٥المائده: ۱۰۳.

| وَإِن | يَكُن | مَّيْتَةً | فَهُمْ | فِيهِ | شُرَكَاءُ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوكه | وي هغه | مړ | نو بيا دوئ ټول | په خوراك دهغې كښې | شريكان دي |
| اوكه چرې هغه بچي مړوي ...........نوبيا په كښې ټول (نرښځي) شريكان وي | | | | | |

| سَيَجْزِيهِمْ | وَصْفَهُمْ | إِنَّهُ | حَكِيمٌ | عَلِيمٌ |
|---|---|---|---|---|
| زربه بدله وركړئ الله دوئ له | دخبرو ددوئ | بيشكه چې هغه | دحكمت خاوند دي | دهرې خبرې نه خبر دي |
| الله ﷻ به دوئ ته دخپلو (غلطو) بيانولو سزا وركړي \| بيشكه الله ﷻ صاحب د حكمت او عالم دي | | | | |

قوله تعالى: خَالِصَةٌ لِّذُكُورِنَا وَمُحَرَّمٌ عَلَىٰ أَزْوَاجِنَا

**دمشركانومتعين شوى حلال اوحرام**- هغه وائي چه كوم ددې څناور په خيټه كښې دى هغه صرف د سړو حق دې نه مراد ښې دى چه دغه شان دبعضو څناورو پئ په ښځوياندې حرام دى اوسړى به نې څكې.كه دچيلئي به چرته نر بچې كيدلو نو هغه به نې حلالولوصرف سړو به خوړلو او ښځو ته به نې نه وركولو ونيل به نې په تاسو حرام دى. اوكه ښځه بچې به كيدو نو هغه به نې نه حلالولو بلكه ساتلو به نې اوكه مړ به پيدا شو نو ټولو به په يوځائ خوړلو د سړو به د خوراك ممانعت نه وو. الله ﷻ د دې خبرې ممانعت اوكړو[1] شعبي رحمه الله فرمائي چه دبحيره څناور پئ به صرف سړوڅكل اوكه يوڅناور به مړشونوسړوسره به ښځوله هم په هغې كښې حصه وركړې كيدې شوه. ارشاد دې چه دهغوى ددې كذب به هغوى ته سخته سزا وركړې شي.لكه چه فرمائي [وَلَا تَقُولُوا لِمَا تَصِفُ أَلْسِنَتُكُمُ الْكَذِبَ هَٰذَا حَلَالٌ وَهَٰذَا حَرَامٌ لِّتَفْتَرُوا عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ ۚ إِنَّ الَّذِينَ يَفْتَرُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ لَا يُفْلِحُونَ] يعني ستاسو ژبې چه كوم دروغ وائي داسې مه وائې چه دا حلال دى اودا حرام دې د دې د پاره چه په الله ﷻ باندې بهتان تړنى، څوك چه په الله ﷻ باندې بهتان تړي هغه كله هم خلاصى نه شي بيا موندې. الله ﷻ ډير حكيم دې په خپلو اقوالو او افعالوكښې اود بنديګانود خو او بدو اعمالو نه ښه خبر دې هغه به دوى ته پوره پوره بدله وركړي.

| قَدْ | خَسِرَ | الَّذِينَ | قَتَلُوا | أَوْلَادَهُمْ | سَفَهًا |
|---|---|---|---|---|---|
| بيشكه | نقصان اوكړو | هغه كسانو | چې اووژل هغوئ | اولاد خپل | په وجه دجهالت |
| هغه خلق يقينا په نقصان كښې دى \| ....چې كوموخلقو د جهالت | | | | | |

| بِغَيْرِ عِلْمٍ | وَحَرَّمُوا | مَا | رَزَقَهُمُ اللَّهُ | افْتِرَاءً |
|---|---|---|---|---|
| اودناپوهتياسره | اوحرام كړو هغوئ | هغه رزق | چې وركړې وو هغوئ له الله | خالص په دروغو تړلو سره |
| اوناپوهئ په وجه خپل اولاد قتل كړل\| اوكومه روزى چې الله ﷻ وركړې وه هغه ئې په خان حرامه كړه | | | | |

| عَلَى اللَّهِ | قَدْ ضَلُّوا | وَمَا كَانُوا | مُهْتَدِينَ |
|---|---|---|---|
| په الله باند | يقيناً چې بې لارې شو | اوندوو هغوئ | نيغه لارموندونكى |
| دائې صرف په الله ﷻ دروغ تړلى دى\| دغه خلق يقيناګمراه شو اودوئ سمه لار نشى موندې \| | | | |

قواه تعالى: قَتَلُوا أَوْلَادَهُمْ

**دعربودمشركانوجهالت اودهغې انجام**:-الله ﷻ فرمائي هغه خلق چه داكارونه كوى هغه دنيا او آخرت د دواړوخايونوپه نقصان كښې دى.په دنياكښې خودخپل اولاد قتل كولو سره په خساره كښې پريوتل اود

[1] الطبرى: ١٢/١٤٧.

هغوی دولت واخستې شو او په هغوی باندې مفلسي راغله.اوپخپله دخپل طرفنه چه هغوی کومې نوې خبرې رائج کړې وې د هغې په وجه دهغه گټندويه څيزونونه محرومه شو اود آخرت په لحاظ داسې چه د ټولونه زيات خراب ځایٔ داوسيدو مستحق شو.لکه چه فرمائی کوم خلق چه په اللهﷻ باندې د دروغو بهتان اوتړی هغوی به کله هم خلاصې بيانه مومې.په دنياکښې يوڅوورځې فائده حاصله کړنی بيا به آخر ستاسو زمونږ طرف ته راتلل وی اود خپل کفر په سبب به سخت عذاب وڅکی. (۱)ابن عباس﷛ فرمائی که تاسو غواړنی چه د عربوجهل معلوم کړنی نو په سورت انعام کښې د يوسل ديرش نمبر آيات نه پس آيت اولوله ﴿قَدْ خَسِرَ الَّذِيْنَ قَتَلُوْٓا اَوْلَادَهُمْ سَفَهًۢا بِغَيْرِ عِلْمٍ وَّحَرَّمُوْا مَا رَزَقَهُمُ اللّٰهُ افْتِرَآءً عَلَى اللّٰهِ ۭ قَدْ ضَلُّوْا وَمَا كَانُوْا مُهْتَدِيْنَ﴾(۲)

وَهُوَ الَّذِيْٓ | اَنْشَاَ | جَنّٰتٍ | مَّعْرُوْشٰتٍ | وَّغَيْرَ مَعْرُوْشٰتٍ

اوهغه هغه ذات دی|چی پیدائي کړل| باغونه |غوړيدلی په لرگوباندې|اوچې نهٔ وی غوړيدلی په بل څيز باندې

اوالله هغه ذات دی چې پيدائې کړل باغونه غوړولی (لکه انگور) اوهغه چې نه وی غوړيدلی په بل څه باندې

وَّالنَّخْلَ | وَالزَّرْعَ | مُخْتَلِفًا | اُكُلُهٗ | وَالزَّيْتُوْنَ | وَالرُّمَّانَ

اودکهجورې باغونه دکجورو| اوفصلونه |چې مختلف وی |خوراکونه دهغې|اونې دخونه | اودانار

او داسې فصلونه چې رنگ رنگ خوراکونه ورکوی |اوخونهٔ او انار چې رنگونه ئې يوشان دی

مُتَشَابِهًا | وَّغَيْرَ مُتَشَابِهٍ ۭ | كُلُوْا | مِنْ ثَمَرِهٖٓ | اِذَآ | اَثْمَرَ | وَاٰتُوْا

په شکل کښې يوشان| په خوندوکښې مختلف|خورئ|دپيداوار دهغې نه|کله چې|ميوې اونيسې| اوورکړئ

اوخوندونه ئې جدا جدا دی | تاسودهغې ټولې ميوې خورئ| هرکله چې اولږی | اود

حَقَّهٗ | يَوْمَ | حَصَادِهٖ ڮ | وَلَا تُسْرِفُوْا ۭ | اِنَّهٗ | لَا يُحِبُّ | الْمُسْرِفِيْنَ

حق دهغې په ورځ |دريبلو دهغې |اودحد نه مهٔ اوړئ|بيشکه چې الله | نهٔ خوښوی | دحد نه اوړيدونکی

کټ کولو په ورځ د الله ﷻ حق ورکوئ|اوبې ځايه خرڅ مه کوئ| الله ﷻ اسراف کونکی نه خوښوی

وَمِنَ الْاَنْعَامِ | حَمُوْلَةً | وَّفَرْشًا ۭ | كُلُوْا | مِمَّا

اودخاروۀ نه خينې |باروړونکی دی |اوخينې دفرش په کارراتلونکی دی |خورئ| دهغې نه

اوخاروی ئې پيداکړی دی| چې بارونه اوړی| اوخينې دفرش په کارراتلونکی دی| تاسو دهغه

رَزَقَكُمُ اللّٰهُ | وَلَا تَتَّبِعُوْا | خُطُوٰتِ | الشَّيْطٰنِ ۭ | اِنَّهٗ لَكُمْ

چې درکړی دی تاسو ته الله |اوپيروی مهٔ کوئ| دقدمونو | دشيطان | بيشکه هغه ستاسو دپاره

روزئ نه خوراک کوئ| چې کومه الله ﷻ درکړې ده | اودشيطان په قدمونو پسې مه ځئ| بيشکه هغه

عَدُوٌّ | مُّبِيْنٌ

دشمن دی |ښکاره |

ستاسو ښکاره دښمن دی |

(۱) يونس ۱۰\ ٦۹-۷۰.

(۲) صحيح بخاری کتاب المناقب باب قصه زمزم وجهل العرب: ۳۵۲٤.

قوله تعالی: وَهُوَالَّذِیٓ اَنْشَاَ

الله ﷻ دهر څیزخالق دی:-فصلونه میوې او انعام په کومو کښې چه دا مشرکان تصرف کوی اود خپلو فاسدو آراؤ نه ددې تفسیر کولو سره څه حلال او څه حرام ګرځوی.دا ټول د الله ﷻ پیداکړې شوی دی. دا چتونو والا او غوبل کیدونکې او بغیر چتونو باغونه کوم چه په شپولونویاندې نه وی ختلې ټول دهغه پیداکړې شوی دی. معروشات خو هغه زیلنې او په شپولونو باندې ختلې شوی لکه انګور وغیره وغیر معروشات هغه میوه دارې ونې چه په څنګلونو او غرونوکښې راټوکیږی چه یو شان هم وی او بیل بیل هم یعنی په کتوکښې یو شان او په خوند اومزه کښې بیل بیل. کله چه ښه میوې شی نو د هغې میوې خورنې اود فصل ریبلو په وخت کښې غریبانانوته چه د ورکولو کوم حق دې هغه هم ادا کوئی.

وَاٰتُوْاحَقَّهٗ یَوْمَ حَصَادِهٖ کښې دحق نه څه مراد دی؟بعضو دې نه فرض شوې زکوة مراداخستې دې.کله چه هغه ناپ کړې شی یاټول کړې شی نوهم په هغه ورخ دی حق اداکړې شی.اول به خلقونه ورکولوبیا شریعت لسمه حصه مقررکړه اوکوم چه دغونچونه پریوځی هغه هم دمسکینانوحق دې.حضور ﷺ فرمائیلی چه دچا کهجورې د لسو "وسقو"نه زیات وی نو هغه دې یوه غونچه د مسکینانو دپاره جمات ته راوړی اوزوړندې کړی([1]) ددې حدیث اسناد جیداوقوی دی.حسن بصری رحمه الله فرمائی چه دا دمیوو او دانوصدقه ده اود زکوة نه علاوه د غریبانانو یو زیاتی حق دې اود فصل کټکولو او زکوة ورکولو نه علاوه ورکولې شی. اوکله چه مسکینان په هغه ورخ راشی نو هغوی ته هم څه نه څه ورکول پکار دی او ونیلې شوی چه کم نه کم یویوموټې ورکوئی. دا د کر په وخت او دغه شان د پریکولو په وخت هم یو یو موټې او پریوتلې هم د مسکینانو حق دې.

ایاداحلق اوس هم شته دې که منسوخ شوې دې:-ابن جبیر رحمه الله وائی چه دا د زکوة فرض کیدونه وړاندې خبره ده چه دمسکینانود پاره یوموټې مقدار وواود څاروی د پاره واښه یعنی ګیا وه او پریوتلې هم د غریبانانوحق وو. ابن مردویه رحمه الله وائی چه دا څیز واجب وو بیا الله ﷻ دا منسوخ کړل اود دې په ځای عشر اونصف عشر مقررکړو.ابن جریر رحمه الله هم دااختیارکړې دې.زه وایم چه دامنسوخ ګنړل یوه غورطلب خبره ده څکه چه داخو یوداسې څیز وو چه واجب وو بیا په تفصیل سره د دې بیان اوشو او دا اندازه مقرر شوه چه څومره به ویستلې شی. وائی چه دا زکوة په کال دویم هجری کښې فرض کړې شوې وو. الله ﷻ دهغه خلقوبدبیان کړل چه فصل خو کټ کوی خو غریبانانوته د دې نه صدقه نه ورکوی. لکه څنګه چه د یوباغ والا ذکر په سورت "ن" کښې شوې دې چه هغه هغوی عهدوپیمان اوکړو چه سحر کیدو سره به فصل کټ کوو خو ان شاء الله نی نه وو ونیلې نو هم د شپې په دې فصل باندې یوه هوا اوچلیده اوټول فصل تباه شواوهغوی ترسحره پورې اوده پاتې وو اود پتې ټولې دروازې تورې سوزیدلې ښکاریدې. کله چه سحر راپاسیده نو ونیل وختی پتی ته ځئی څکه چه پتې به پریکوو. نو هغوی لاړل او پټ پټ به نی ونیل چه ګورئی دا غریبانان او فقیران رانه شی نوسحر وختی زر اورسیدل. په رسیدو باندې چه هغوی کله خپل باغ ته اوکتل نو وئی ونیل چه مونږ دهوکه شو او بل باغ ته راغلو، بیائی وئیل چه نه باغ خو زمونږ دې خو لکه چه مونږ د دې باغ نه محروم کړې شو. په دوی کښې یو ښه سړی اوونیل ما تاسو ته نه وو ونیلی بیا تاسو ولې د الله ﷻ تسبیح نه لوستل. بیا هغوی اوونیل اې الله ته پاك نی په دې کارکښې زیاتې هم زمونږ د طرف نه شوې وو اوس هر یو بل ملامته کولو اوونیل نی چه افسوس په مونږ باندې مونږ د الله ﷻ نه سرکشی کړې وه. څه عجیبه ده چه الله ﷻ مونږ ته د دې نه هم بهتر باغ راکړی. مونږ د خپل الله ﷻ طرف ته رجوع کوو. ګورئی د دنیا

---

[1] ) ابوداؤد کتاب الزکوة باب فی حقوق المال:۱۶۶۲ وهوحسن. احمد:۳/۳۵۹-۳۶۰، ابویعلی:۲۰۳۸.

عذاب داسې وی اود اخرت عذاب خو دې نه ډیر زیات دی په دې شرط چه لږ شان غور اوکړنی.(١)

اسراف څه ته وائی؟ دالله ﷻ ارشاددې ﴿ وَلَا تُسْرِفُوٓا۟ ۚ إِنَّهُۥ لَا يُحِبُّ ٱلْمُسْرِفِينَ ﴾ یعنی په ورکولوکښې د ضرورت نه زیات مه ورکوئی.بعضې خلقوبه دفصل کټ کولوبه وخت کښې دومره ډیر ورکول چه خبره به په اسراف کښې داخله شوه نواوفرمائیلې شو﴿ وَلَا تُسْرِفُوٓا۟ ﴾ ثابت ابن قیس ﷺ د خپلوکهجورو نه کهجورې راکوزې کړې او وئی وئیل نن چه څوك هم ماله غوښتلو له راشی هغه ته به ورکوم. تردې چه دومره خلق راغلل چه دهغه د پاره یوه دانه میوه هم پاتې نه شوه. نو دا آیت نازل شو چه الله ﷻ اسراف کونکی نه خوښوی. ابن جریج ﷫ وائی چه مطلب دا دې چه په هره خبره کښې د اسراف نه کار اخستلو کښې ممانعت دې.ایاس بن معاویه وائی چه دالله ﷻ د حکم پوره کولوکښې دزیاتی نه کارواخستلې شو نو هغه اسراف دې. سدی ﷫ وائی چه دا مراد دې چه دومره مه ورکوه چه پخپله هسې کینې او فقیر شې محمدبن کعب﷫ وائی چه د زکوة ورکولونه منع کیږه مه ګنی د الله ﷻ نافرمانی به لازم شی. لیکن ربښتیاخو دا دی چه په هرڅیز کښې داسراف مخالفت دې خودآیت دسیاق نه دابښکاره ده چه څنګه الله ﷻ اوفرمائیل چه کله پاخه شی نو دهغې میوې خورنی اود فصل پریکولو په وخت کښې غریبانانونه هم خپل حق ورکوئی اوتاسو د هغې په خوړلوکښې د اسراف نه کار مه اخلئی څکه چه په زیات خوراك کښې دعقل او بدن نقصان دې لکه چه فرمانی خورئی څکښی خو زیاتې مه کوئی(٢) په صحیح بخاری کښې دی چه خورئی څکښی اغوندئی خو په دې خبروکښې اسراف مه کوئی او څان مه ښائی

دحَمُولَةً او وَفَرْشًا مختلف تفسیرونه: د الله ﷻ ارشاددې ﴿وَمِنَ ٱلْأَنْعَٰمِ حَمُولَةً وَفَرْشًا﴾ یعنی ستاسو دپاره څاروی پیدا کړل چه ستاسو د بوج اوړلوکارکوی اود سورلئی کارکښې هم راځی لکه اوښ. او فرش نه واړه څاروی مراد دی(٣)یا د وړوکی قد والا اوښان. ابن عباس ﷺ فرمائی"حمولة" نه اوښ اس قچر او خره اوهر هغه څناور مراد دې چه بوج اوړی. اود فرش نه چلی مراد دی. ابن جریر﷫ وائی چه زه خیال کوم چه فرش په دې وجه وئیلې شوې دې چه هغوی د ټیټ قد په وجه لکه د زمکې فرش غوندې جوړشوی دی. دعبدالرحمن بن زید﷫ خیال دې "حمولة" دسورلئ څاروی دی اوفرش نه هغه څاروی مراد دی کوم چه حلالولې شی او خوړلې شی یاد هغوی پئی څکلې شی. په چیلئی باندې بوج نه شی بار کولې خود هغې غوښه خوړلې شی اود دې د ویښتونه کمبل اوفرش جوړولې شی. هم دغه هغه معنی ده کومه چه عبدالرحمن د دې آیت په تفسیرکښې کړې ده اودا صحیح هم ده څکه چه د الله ﷻ د دې قول نه هم د دې تصدیق کیږی ﴿أَوَلَمْ يَرَوْا۟ أَنَّا خَلَقْنَا لَهُم مِّمَّا عَمِلَتْ أَيْدِينَآ أَنْعَٰمًا فَهُمْ لَهَا مَٰلِكُونَ ۝ وَذَلَّلْنَٰهَا لَهُمْ فَمِنْهَا رَكُوبُهُمْ وَمِنْهَا يَأْكُلُونَ ۝﴾ یعنی آیاهغوی نه پوهیږی چه مونږداڅیزونه دهغوی دفائدې دپاره پیداکړی اوددې څناورو په جوړولو کښې زمونږ لاس کارکړې دې دکومو چه هغوی مالکان جوړشوی دی.مونږ دا څناورددې انسانانود پاره مسخر کړی دی چه په بعضو هغوی سوریږی اوبعضې حلالوی اودهغې غوښه خوری او فرمائی چه په دې څناوروکښې ستاسو دپاره ډیر عبرت او نصیحت دې. د دوی د وینې نه جوړ شوی پئی مونږ په تاسو څکوو داخالص پئی د څکونکود پاره څومره مزیدار وی اود هغوی ویښته ستاسو د پاره د لباس اواغوستلو کاردرکوی اود نورکارونو د پاره استعمالیږی(٤)او فرمائی الله ﷻ داڅناورکوم چه ستاسو دپاره پیداکړی تاسو پدې باندې سوریږئی داخورئی اوستاسو دپاره نورډیرمصالح هم دی. او تاسو دې نه دخپل

---

(١) القلم: ١٧، ٣٣.

(٢) صحيح بخاري كتاب اللباس باب قول الله تعالى ﴿قل من حرم زينة الله ....﴾ تعليقًا قبل الحديث ٥٧٨٣ نسائى: ٢٥٦٠.

(٣) حاكم: ٣١٧/٢، عن ابن مسعود ﷺ.

(٤) النحل: ٦٦\١١٦

زړه مقاصد پوره کوني.تاسوپدې سوريږئ اوپه جهازونواوکشتوکښې بوج اوړلواوسورلئ کوني.الله ﷻ تاسو ته خپلې څومره نښې پیش کوی تاسوبه دالله ﷻ دکومې کومې نښې نه انکار کوئ .(١)
**خوراک څکګ د شیطان مه منئ** :دالله ﷻ ارشاد دی﴿كُلُوا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ﴾یعنی الله ﷻ چه تاسو له کوم ګلونه میوې فصلونه اوڅاروی وغیره درکړی که داغواړئ نو وئې خورئ داټول الله ﷻ پیداکړی دی او ستاسو رزق ئې جوړکړې اوتاسو د شیطان دطریقې اوحکمونو منل مه کوئ لکه څنګه چه دې مشرکانو تابعداری کړې ده او هغوی د الله ﷻ بعضې رزق په ځان باندې حرام کړی دی.اې خلقو شیطان ستاسو ښکاره دښمن دی یعنی که لږ شان هم سوچ اوکړئ نو د هغه دښمنی بالکل ښکاره ده. تاسو هم شیطان خپل دښمن اوګرځوئ هغه په تاسو باندې په خپل لښکر سره حمله کوی د دې د پاره چه تاسو هم دوزخیان شئ. اې بنیادمو شیطان دې تاسو په فتنه کښې وانه چوی څنګه چه هغه ستاسو پلار او مور د جنت نه اوویستل اود هغوی نه ئې د هغوی جامې اوویستلې او هغوی ئې بربنډ کړل(٢) اوفرمائی چه تاسو ما پریږدئ او شیطان اودهغه اولاد خپل دوستان جوړوئ داشیطانان خو ستاسو دښمنان دی. د ظالمانودپاره ډیره خرابه بدله ده. (٣) په قرآن کښې په دې موضوع باندې ډیر زیات آیاتونه دی.

| |
|---|
| ثَمٰنِيَةَ اَزْوَاجٍ ۚ مِنَ الضَّاْنِ اثْنَيْنِ وَمِنَ الْمَعْزِ |
| اته \| جوړئ دی \| دګډونه \| دوه دی \| اودچیلونه |
| \| توليې اته جوړې دی \| دګډونه دوه \| اود چیلو نه |
| اثْنَيْنِ ؕ قُلْ ءٰٓالذَّكَرَيْنِ حَرَّمَ اَمِ الْاُنْثَيَيْنِ اَمَّا اشْتَمَلَتْ |
| دوه دی\| ورته اووایه\|آیا دواړه نران \| حرام کړی دی الله\| یادواړه ښځې \|یا هغه چې مشتمل دی |
| دوه دی\| ‹اني پیغمبره › دوئ نه تپوس اوکړه چې دوه نران په کښې الله حرام کړی \|اوکه دواړه ښځې یاهغه |
| عَلَيْهِ اَرْحَامُ الْاُنْثَيَيْنِ ؕ نَبِّـُٔوْنِيْ بِعِلْمٍ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۙ |
| په هغې \|رحمونه \|ددغه دواړوښځو\|خبرراکړئ ماته\| په علم سره \|که یئ تاسو \| رښتنی |
| چې دمادو په خیټو کښې پراته دی \| ماته په دلیل سره صحیح صحیح اوښائي \| که تاسو ایمان لرئ |
| وَمِنَ الْاِبِلِ اثْنَيْنِ وَمِنَ الْبَقَرِ اثْنَيْنِ ؕ قُلْ ءٰٓالذَّكَرَيْنِ حَرَّمَ |
| اوداوښانونه \|دوه دی \|اودغوایانونه\| دوه دی \|ورته اووایه\| آیادواړه نران \| حرام کړی دی الله |
| اوپه اوښانو کښې دوه قسمونه دی \| او په غوایانو کښې دوه\| ‹اني پغمبره› تپوس ترې اوکړه چې آیادواړه نران الله حرام کړی |
| اَمِ الْاُنْثَيَيْنِ اَمَّا اشْتَمَلَتْ عَلَيْهِ اَرْحَامُ الْاُنْثَيَيْنِ ؕ |
| یادواړه ښځې \|یاهغه \|چې مشتمل دی \|په هغې باندې\| رحمونه \|ددغه دووښځو |
| دی اوکه دواړه مادې \| یا هغه مادې چې ددې مادو په خیټو کښې پراته دی |

---
(١) غافر: ٧٩\٤٠-٨١
(٢) الاعراف:١٧ ٢٧.
(٣) الکهف: ١١٨ ٥٠.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اَمْ كُنْتُمْ | شُهَدَآءَ | اِذْ | وَصّٰىكُمُ اللّٰهُ | بِهٰذَا ۚ | فَمَنْ | اَظْلَمُ |
| یاوئ تاسو | حاضر | کله | چې حکم کولو تاسوته الله | په دې سره | نوڅوک دي | ډیر ظالم |
| آیاتاسو حاضر ولاړ وی څه وخت چې الله ﷻ تاسو ته ددې وصیت کولو \| نو دهغه چانه لوئې ظالم | | | | | | |
| مِمَّنِ افْتَرٰى | عَلَى اللّٰهِ | كَذِبًا | لِّيُضِلَّ | النَّاسَ | بِغَيْرِ عِلْمٍ ؕ | |
| دهغه چانه چې تړی | په الله باندې | دروغ | دپاره ددې چې گمراهه کړی | خلق | بې دعلم نه | |
| څوک کیدشی چې په الله ﷻ باندې بغیر دلیل نه تهمت لګوی \| چې په دې باندې خلق گمراه کړی | | | | | | |
| اِنَّ اللّٰهَ | لَا يَهْدِي | الْقَوْمَ | الظّٰلِمِيْنَ ۟ | | | |
| بیشکه الله | نه ښائی لارنیغه | قوم | ظالمانوته | | | |
| بیشکه الله ﷻ ظالمانو ته لار نه ښائی | | | | | | |

قوله تعالی: ثَمٰنِيَةَ اَزْوَاجٍ

**دمشرکانو په حلال اوحرام کنبې دځان نه تقسیم**:-د اسلام نه مخکښې جاهلانوعربوبعضې څاروی په خپل ځان باندې حرام کړی ووا‌ود هغوی قسمونه ئې ګرځولي وولکه بحیره،سائبه،وصیله او حام وغیره په څناوروکښې هم اوپه فصلونو میوو کښې هم.الله ﷻ اوفرمائیل چه ستاداباغونه فصلونه دابوج اوچتونکی څاروی او سورلی والا ټول څناور هم هغه پیدا کړی دی.بیا ئې د انعامونوقسمونه ذکر اوفرمائیل اودچیلئی ذکرئی اوفرمائیلو کومه چه دسپین رنګ وی او ګډه چه د تور رنګ وی اود هغې د نر اوښځې ذکر ئې هم اوفرمائیلو. بیاد اوښ نراو ښځې دغه شان د غواګانو. هغه په دې څیزونوکښې یو څیز هم حرام نه دې ګرځولې اونه ددې بچی.ځکه چه دا ټول دبنیادمو دخوراك سورلئی بوج اوچتولو اود پښیو وغیره د فاندې اخستلو د پاره پیدا کړل. لکه چه فرمائی مونږ ستاسو د پاره د دې څناورو اته جوړې نازلې کړی(¹) ﴿اَمَّا اشْتَمَلَتْ عَلَيْهِ اَرْحَامُ الْاُنْثَيَيْنِ﴾دا دکافرانوذ دې قول رد دې چه د دې څناورو په خیټوکښې څه دی هغه صرف زمونږ دسړودپاره دی اوزمونږ په ښځوباندې حرام دی.اوس الله ﷻ فرمائی که چرې تاسو رښتونی یئې نوماته په یقین سره اوښایئې چه کومو څیزونه تاسود حرام کیدو ګمان کونی الله ﷻ هغه په تاسوځنګه حرام کړی. تاسو بحیره اوسائبه وغیره ولې حرام ګرځونی.ابن عباس ﷺ فرمائی د اتو جوړونه دوه چیلئی اوده ګډې نو څلور جوړې شوې. فرمائی چه دې کښې ما یو هم نه دې حرام کړې.اود هغې بچی که هغه ښځه وی اوکه نر څه حرام اوڅه حلال ځنګه ګرځونی که چرې تاسو رښتونی ئې نو په یقین سره اوښائې دا خو ټول په ټول حلال دی﴿اَمْ كُنْتُمْ شُهَدَآءَ اِذْ وَصّٰىكُمُ اللّٰهُ بِهٰذَا﴾ هغوی ملامت کوی چه ځنګه د خپل ځان نه یوه یوه نوې نوې خبره راوباسئی او پخپله ئې حرام ګرځوی اوبیا داحراموالې د الله ﷻ طرفته منسوب کونی.اوس چه څوك په الله ﷻ باندې دروغ اوتړی چه خلق دهوکه کړی دې نه به لوئ ظالم څوك وی. د دې په مصداق کښې عمروبن لحی بن قمعة ته خودلې کیږی چه هغه د ټولونه اول د انبیاؤ دین بدل کړې وو اود سائبه وصیله او حام عقیده ئې پیداکړې وه. د حدیث نه هم دغه ثابت دی.(²)

---

¹) الزمر:٦\٣٩

²) صحیح بخاری کتاب التفسیر سروه المائده باب ﴿ماجعل الله من بحیرة ولاسائبة...﴾: ٤٦٢٤، صحیح مسلم: ٢٨٥٦، الاوائل لابن ابی عاصم: ١٩٢، المعجم الکبیر: ١٠٨٠٨.

قُلْ لَّآ اَجِدُ فِيْ مَآ

| اووایه | نهٔ مومم زه | په هغې کښې |

اني پیغمبره) ورته اووایه چې ماته کومه

اُوْحِيَ اِلَيَّ مُحَرَّمًا عَلٰى طَاعِمٍ يَّطْعَمُهٗٓ اِلَّآ

چې وحی شوی ده | ماته | حرام کړې شوې څیز | په خوړونکي باندې | چې خوري ئې هغه | مګر

وحي شوې ده په هغې کښې خوزه په یو خوړونکي باندې دخوراک دپاره هیڅ څیزحرام نه مومم | مګر

اَنْ يَّكُوْنَ مَيْتَةً اَوْ دَمًا مَّسْفُوْحًا اَوْ لَحْمَ خِنْزِيْرٍ فَاِنَّهٗ

که وی | مرداره | یا وینه | بهیدونکی | یا غوښه | دخنزیر | پس بیشکه هغه

دا چې مردار وی | ........یا بهیدلې وینه | ........یا د خنزیرغوښه وی |...ځکه چه دا

رِجْسٌ اَوْ فِسْقًا اُهِلَّ لِغَيْرِ اللّٰهِ بِهٖ ۚ فَمَنِ اضْطُرَّ

پلیته ده | یاناجائزه ذبیحه وی | چې آواز شوې وی | بغیر دالله | په هغې باند پس | هغه څوك | چې مجبوره کړې شو

پلیته ده او یاناجائزه ذبیحه وی چې دالله ﷻ نه سوا دبل چانوم پرې اخستې شوې وی | څوك چې محتاج شي

غَيْرَ بَاغٍ وَّلَا عَادٍ فَاِنَّ رَبَّكَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝

حال دا چې نافرماني کونکې نهٔ وی | اونهٔ زیاتې کونکې وی | پس بیشکه رب ستا | بښونکې دې | رحم کونکې دې

نونافرماني دې نه کوی | اوحدنه دې زیاتې نه کوی | بیشکه ستا رب بښونکې اومهربان دې

قوله تعالى: قُلْ لَّآ اَجِدُ فِيْ مَآ اُوْحِيَ اِلَيَّ

یوڅیزحرام یاحلال ګرځول د الله ﷻ کار دې:-خپل رسول ﷺ ته حکم فرمائي چه اې محمد ﷺ! دې خلقو ته اووایه چاچه د الله ﷻ رزق حرام کړو، زما طرف ته کومه وحی نازلیږی په هغې کښې خو چرته هم نشته چه د دې خوړل حرام دی په چا باندې د څاروونه سوا هغه چه کوم بیان شوی نور هیڅ حرام نه دی.
د دې آیت مفهوم رفع کونکې ددې آیت نه پس د سورة مائده آیاتونه دی او په دویم حدیث کښې هم کوم کښې چه د حرمت بیان دې. بعضې خلق دې ته هم منسوخ وائي خو داکثرو متاخرینو په نیز دا منسوخ نه دی ځکه چه په دې کښې خو به د اصل جواز هم رفع کول لازم راځي. "دم مسفوح" بهیدونکې وینې ته وائي، که چرې دا آیت نه وو نو خلقو به دا وینه هم اخستې کومه چه په رګونو کښې روانه ده لکه چه یهودیانو اوکړل.عمران بن جریر وائی چه ماد ابومجلزنه د وینې باره کښې تپوس اوکړو یعنی دهغه وینې باره کښې کوم چه دحلالې سر مرې اوغیره پورې انختې وی اودپخولوپه کټونی کښې چه د وینې کوم سوروالې ښکاری نو ونی ونیل چه الله ﷻ خو بهیدونکې وینه منع فرمائیلې که غوښې سره کومه وینه لګیدلې وی نوهیڅ باك نشته. دقاسم نه روایت دې چه حضرت عائشه ﵂ به دخنګلی څناور غوښه او کټونی کښې دننه وینه کښې هیڅ باك نه لرلو.
دحضرت جابربن عبدالله ﵁ نه سوال اوکړې شوچه خلق ګمان کوی چه نبی کریم ﷺ دجنګ خیبرپه موقع د ساتلې شوی خر دغوښې مخالفت کړې وو. نو ونی ونیل چه او. حکم بن عمرو ﵁ د رسول الله ﷺ نه داسې روایت کوی خو ابن عباس ﵁ چه د تفسیرسمندر دې د دې نه انکار کوی او دا آیت لوستلو

سره اوروی ﴿قُل لَّآ أَجِدُ فِي مَآ أُوحِيَ إِلَيَّ مُحَرَّمًا عَلَىٰ طَاعِمٍ يَطْعَمُهُ﴾(۱)ابن عباس ﷺ فرمائي چه دجاهلیت دزمانې خلقوبه بعضې ځیزونه خوړل او بعضې به نې مکروه او ناپاکه ګڼړل او ترک کول به نې. نو الله ﷻ به خپل پیغمبر ﷺ باندې احکام رانازل کړل او حلال نې حلال او حرام نې حرام اوخودل او د کومو ځیزونوسره نې چه کوم حکم نه دې ورکړې د هغې خوړل مباح دی اوبیانی د دې آیت اعاده اوفرمانیله (۲)

**دمردارچیلی وغیره څرمن پاکه ده:-** دابن عباس ﷺ نه روایت دې چه د سوده بنت زمعه ﷺ یوه چیلئی مړه شوه نو هغې رسول الله ﷺ ته اووئیل چه زما چیلئی مړه شوه. نو حضور ﷺ اوفرمائیل چه د هغې د څرمن نه دې ولې مشك جوړنه کړو. حضرت سوده ﷺ فرمائیل چه چیلئی به مړه شوه نود هغې د څرمن نه به مونږ مشك جوړولو.بیا ئی داآیت تلاوت کړو چه مرداره،بهیدونکې وینه اود خنزیر غوښه نه دی خوړل پکار خکه چه دا حرام دی. خو که تا د مردار ځاروی د څرمنې دباغت یعنی رنګول اوکړ نو دا استعمالولې شی. نوحضرت سوده ﷺ د هغې د څرمنې نه مشك جوړکړو چه تر ډیرې مودې پورې هغې سره وو(۳) دابن عمر ﷺ نه یوسړی د شکونړ باره کښې دخوراك تپوس اوکړو نوهغوی دا آیت اولوستلویعنی په وحی کښې ددې د حرمت باره کښې څه ذکر نشته نویو بوډا چه هغوی سره ناست وو هغه اووئیل چه ما د حضرت ابوهریره ﷺ نه اوریدلی چه حضور ﷺ فرمانیلی چه شکونړیوخبیث ځیز دې دخبائثونه. نوابن عمر ﷺ اووئیل چه که حضور ﷺ فرمانیلی دی نو هم داسې کول پکار دی.(۴)

**مجبورئی کښې د حرام ځیز استعمال::** د الله ﷻ ارشاد مبارك دې ﴿فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَلَا عَادٍ﴾ که څوك د یوحرام ځیزپه خوړلو باندې مجبوراومضطر شی اونه هغه د نفس په خواهش داسې کوی اونه د ضرورت نه زیات خوری نو د هغه د پاره خیر جائز دې خکه چه الله ﷻ بښونکې اومهربان دې. د دې آیت تفسیر په سورة بقره کښې تیرشوې او پوره رڼړا پرې اچولې شوې ده. د دې آیت د سیاق نه دا غرض معلومیږی چه دلته په مشرکانو باندې رد مقصود دې چه هغوی په خپل ځان باندې د بعضې ځیزونو حرامولو بدعت قائم کړې وو لکه د بحیره او سائبه وغیره حرمت. نو حضور ﷺ حکم اوکړو چه دوی ته خبر ورکړنی چه د دې څناورو د حرمت خو هډو ذکر نشته په دې وجه مسلمانانو له د دې د خوراك نه د بچ کیدلو ضرورت نشته. صرف د مردارې بهیدونکې وینې او خنزیر د غوښې ممانعت دې اود غیر الله د حلالې نه نی منع فرمانیلې ده. د دې نه علاوه بل هیڅ ځیز الله ﷻ نه دې حرام کړې. نو الله ﷻ چه کوم ځیز نه دې حرام کړې نوتاسو نی دکوم ځائ نه حرام ګرځونی. هم د دې په بناء د نورو ځیزونوحرمت لکه د ساتلې شوې خر یا څناورو غوښه یا د پنجې والا مرغو څنګه چه دعلماؤ مشهور مسلك دې د دې تولو حرمت باقی نه پاتې کیږی(دا یاد ساتل پکاردی چه ددې حرمت قطعی دې خکه چه دصحیح احادیثونه ثابت دی).

| وَعَلَى الَّذِينَ | هَادُوا | حَرَّمْنَا | كُلَّ ذِي ظُفُرٍ | وَمِنَ الْبَقَرِ وَالْغَنَمِ |
|---|---|---|---|---|
| اوپه هغه کسانوباندې | چې یهودیان شو | حرام کړل مونږه | هرڅناورنوکانووالا | اودغویانونه اودګډوبیزونه |

اوپه یهودیانو باندې مونږ د نوکونو ټول څناور حرام کړی وو او په غوئیین مال او چیلو کښې

---

۱) صحیح بخاری کتاب الذبائح باب لحوم الحمره الانسیه: ۵۵۲۹.

۲) ابوداوٗد کتاب الاطعمه باب مالم یذکر تحریمه: ۳۸۰۰، وسنده صحیح، حاکم: ۱۱۵/۴.

۳) احمد: ۳۲۷/۱-۳۲۸، صحیح بخاری کتاب الایمان والنذور باب اذا حلف ان لایشرب نبیذاً فشرب طلاً اوسکراً... ۶۶۸۶

۴) ابوداوٗد کتاب الاطعمه باب فی اکل حشرات الارض: ۳۷۹۹،سنده ضعیف، بیهقی:۳۲۶/۹.

| حَرَّمْنَا | عَلَيْهِمْ | شُحُومَهُمَآ | إِلَّا | مَا | حَمَلَتْ | ظُهُورُهُمَآ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| حرام كړل مونږه | په هغوئ | وازګې دهغوئ | مګرنه | هغه وازګه | چې بار كړي به وه | شاګانو دهغوئ |
| مونږ پرې وازګه حرامه كړې وه | | | ...... مګرهغه چې په ملا پورې لګيدلې وي | | | |

| أَوِ الْحَوَايَآ | أَوْمَا | اخْتَلَطَ | بِعَظْمٍ | ذَٰلِكَ | جَزَيْنَٰهُم |
|---|---|---|---|---|---|
| يا كلمو | يا هغه | چې لګيدلې به وه | دهډوكوسره | دا | بدله وركړې وه مونږ هغوئ له |
| يا كولموپورې انختې وي | | يا هډوكو پورې لګيدلې وي | | دا مودوئ ته دسركشئ سزا | |

| بِبَغْيِهِمْ | وَإِنَّا لَصَٰدِقُونَ |
|---|---|
| په سبب دسركشئ دهغوئ | اوبيشكه مونږه خامخا رښتني يو |
| وركړې وه | او داخه چې وايو بالكل رښتيا دی |

**قوله تعالى: حَرَّمْنَا كُلَّ ذِي ظُفُرٍ**

**دحرام څيزخرخول او اخستل هم حرام دی:**-ارشاددې چه مونږ په يهوديانوباندې د نوك والا څناور حرام كړې وو اود غوا او چيلئ چربي يعني چربي وازګه موهم حرام كړې وه.اوهغه چربي حلاله وه كومه چه د هغوی خيټې هډوكو يا كولمو او معدې پورې انختې وي.دا د نوكونو والا څناور څاروی اومرغئ دی د كومو ګوتې چه پرې پرې او جدا جدا نه وی. لكه اوښ شترمرغ وغيره. سعيد بن جبير رحمه الله وائی چه هغه څناور مراد دی دكومو ګوتې چه نه وی شليدلې. او په يو روايت كښې د سعيد نه داسې هم روايت كړې شوې دی چه هغه د كومو ګوتې چه بيلې بيلې وی لكه چرګ. قتاده رحمه الله وائی چه دې نه اوښ او شترمرغ مراد دې او مرغئ او كبان. او هم د ده نه په يو روايت كښې دی چه مرغئ هيلئ اوهم داسې څناور د كومو ګوتې چه كولاؤ كولاؤ نه وی. يهوديانو به دا څناور او مرغئ خوړلې د كومو پنجې چه كولاؤ وی دغه شان ګورخر يعني ځنګلی خر به ئې هم نه خوړلو. ځكه چه د دې پنجې هم لكه د اوښ په شان كولاؤ نه وی.

**د الْحَوَايَآ نه مراد كومه وازګه ده ؟:**-دغوااو چيلئ د چربي نه هغه چربي مراد ده چه په پټو باندې خان له لګيدلې وی يهوديانو به ونيل چه حضرت يعقوب عليه السلام به دا حرام ګڼړله په دې وجه ئې مونږ هم حرام ګڼرو.دښا چربي حرامه نه وه. امام ابوجعفر وائی چه حوايا جمع ده د كوم واحد چه حاوية دې دا د خيټې دننه څيزونوته وائی لكه لرې كولمې وغيره. يا په هډوكوپورې انختې چربي هغه هم حلاله وه اودغه شان د پښو سينې سراوسترګو چربي هم حلاله وه. دا تنګې چه مونږ په هغوی كړې وه د هغوی د بغاوت او مخالفت دسزا په توګه وه. لكه چه فرمانی﴿فَبِظُلْمٍ مِّنَ الَّذِينَ هَادُوا حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ طَيِّبَٰتٍ أُحِلَّتْ لَهُمْ وَبِصَدِّهِمْ عَن سَبِيلِ اللَّهِ كَثِيرًا﴾يعني كوم څيزونه چه اول په هغوی حلال وو د هغوی د بغاوت اود رب د لارې نه دنورو منع كولودسزاپه توګه پاك څيزونه هم مونږ په هغوی باندې حرام كړې وواوپدې سزا كښې مونږ رښتونی او په عدل باندې وو. ابن جرير رحمه الله فرمائی چه اې محمد ﷺ! مونږ تاته د دې د حرمت باره كښې چه كوم اوخودل هم دغه صحيح دی نه هغه لكه كوم چه يهوديانو ګمان كړې وو چه يعقوب عليه السلام دا حرام ګڼړلې وو.حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه ته خبر ملاؤ شو چه سمره شراب خرڅ كړی دی نو ونې فرمائيل چه الله ﷻ دې سمره هلاك كړی ولې هغه ته پته نه وه چه حضور ﷺ فرمائيلې چه الله ﷻ دې په يهودوباندې لعنت اوكړی چه په چا باندې ئې چربي حرام كړې وه نوهغوی به راويستله او صفاكوله به ئې او خرڅوله

به نې.([۱] د مکې دفتح په ورخوکښې حضورﷺ اوفرمائيل الله ﷻ د شرابو مرداري خنزير او بتانو خرڅول هم حرام کړي دي نو تپوس اوکړې شو يارسول اللهﷺ! د مردارې چربي خو څرمن ته غوړوالي ورکوي په کشتوياندې دا چربي مړلې شي اودا سوزولې شي د رڼا د پاره. نو حضورﷺ اوفرمائيل چه نه دا حرامه ده.([۲] بيائي اوفرمائيل چه الله ﷻ دې يهود هلاك کړي چه کله په هغوی چربي حرامه کړې شوه نو هغوی به هغه ويلې کوله او خرڅوله به نې اود هغې قيمت به نې خوړلو. حضورﷺ اوفرمائيل چه د کوم څيز خوړل حرام دی د هغې خرڅول او ګټه خوړل هم حرام دی د اسامه بن زيدؓ نه هم داسې روايت دې چه مونږ حضورﷺ سره وو او هغوی ( بيمار وو مونږ نې تپوس کولو. حضورﷺ ملاست وو او په څادر نې خپل مخ پټ کړې وو بيا حضورﷺ خپل څادر اخوا کړو او ونې فرمائيل چه په يهوديانو چربي حرامه کړې شوه نو هغه نې خرڅوله اودهغې قيمت به نې خوړلوالله ﷻ هغه هلاك کړل. ([۳] د کوم څيزچه خوراك حرام دې دهغې خرڅول هم حرام دی.([۴]

| فَإِنْ | كَذَّبُوكَ | فَقُل | رَّبُّكُمْ | ذُو رَحْمَةٍ وَاسِعَةٍ |
|---|---|---|---|---|
| نوکه | ادوئ دروغ اوګڼړي تا | انو اووايه | اچې رب ستاسوا | خاوند درحمت فراخه دی ا |
| نوکه دوئ تا دروغژن اوګڼړي نوته ورته اووايه چې ستاسورب دفراخه رحمت خاوند دې | | | | |

| وَلَا يُرَدُّ | بَأْسُهُ عَنِ الْقَوْمِ الْمُجْرِمِينَ ﴿١٤٧﴾ |
|---|---|
| اونشي واپس کولې څوك | عذاب دهغه دقوم مجرمانو نه ا |
| اودهغه عذاب د مجرمانوخلقونه روستوکيدې نشي | |

قوله تعالى: ذُو رَحْمَةٍ وَاسِعَةٍ

**د الله ﷻ درحمت اميد اوعذاب نه ويريدل پکاردي:**-اې محمدﷺ استا مخالف يهود اومشرکان وغيره که تادروغ ګڼړي نوورته اووايه چه ستا رب ډيررحمت والا دې.داددې خبرې د پاره ترغيب دې چه تاسو هم د الله ﷻ نه دهغه وسيع رحمت اوغوارئې چه هغوی ته د رسول ﷺ د اتباع توفيق نصيب شی خکه چه که هغه رحم اونه کړي نو د مجرمانونه د الله ﷻ عذاب څوك هم نشي اخواکولې. دلته ترهيب او تخويف دې چه درسول الله ﷺ مخالفت مه کوئی ګنی دهغې په عذاب کښې به راګير کړې شئ.په هرځائ کښې الله ﷻ ترغيب او تخويف يو ځاي ذکر فرمائيلې دې لکه چه ددې سورت په آخر کښې چه الله ﷻ سريع العقاب دې او ښنونکې مهربان دې ([۵] اودخلقو په ګناه باندې بخښونکې هم دې او شديد العقاب هم دې ([۶] اوزما بنديګان خبر کړه چه رحم کونکې هم يم اوزما عذاب ډير سخت عذاب دی([۷]الله ﷻ ګناهونه ښنونکې توبه قبلونکې اوبياسخت عذاب ورکونکې هم دې.د الله ﷻ نيول ډير سخت دی. پيدا کړې هم هغه دی او واپس هم دهغه طرف ته تلل دی هغه ښنونکې هم دې اومهربان هم([۸] ددې مضمون متعلق ډير آياتونه دی.

---

[۱] صحيح بخاری کتاب البيوع باب لايذاب شعم الميته ولا يباع ودکه:۲۲۲۳-۲۲۲٤، صحيح مسلم:۱۵۸۲،احمد:۲۵/۱، مسندابي يعلى:۲۰۰.

[۲] صحيح بخاری کتاب البيوع باب بيع الميتة والاصنام: ۲۲۳۶، صحيح مسلم: ۱۵۸۱، ابوداؤد: ۳٤۸۶، ترمذی: ۱۲۹۷، ابن ماجه:۱۲۶۷،احمد: ۳۲٤/۳، مسندابي يعلى: ۱۸۷۳، ابن حبان: ٤۸۳۷.

[۳] حاکم: ۱۹٤/٤ امام حاکم او ذهبي ديګ له صحيح ونيلی دی.

[٤] ابوداؤد کتاب البيوع باب في ثمن الخمر والميتة: ۳٤۸۸وسنده صحيح.

[۵] الانعام:۶\ ۱۶۵.

[۶] ۱۳الرعد: ۶.

[۷] ۱۵ الحجر: ٤۹.

[۸] البروج: ۸۵\ ۱۲-۱٤.

سَيَقُولُ الَّذِينَ أَشْرَكُوا لَوْ

| ضرور به وائي | هغه کسان | چې شرك ئې كړې دې | كه

| دا مشركان به ستا په (جواب كښې) وائي كه

شَاءَ اللهُ مَا أَشْرَكْنَا وَلَا آبَاؤُنَا وَلَا حَرَّمْنَا

غوښتلې الله | نۀ به وو كړې شرك مونږه | اونه پلارانو زمونږه | اونۀ به وو | حرام كړې مونږه

الله ﷻ غوښتلې نو مونږ به شرك نه وو كړې | اونه به مو پلار نيكه كولو | اونه به مو دخپل طرفه

مِنْ شَيْءٍ كَذَٰلِكَ كَذَّبَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ حَتَّىٰ

څه څيز | دارنګې | دروغ ګنړلې وو حق | هغه كسانو | چې مخكښې ددوئ نه وو | تر هغې پورې

څه څيز حرام ګنړلو | ددوئ نه مخكښې خلقو هم دغه شان خبرونه انكار كړې وو | تردې چې

ذَاقُوا بَأْسَنَا قُلْ هَلْ عِنْدَكُمْ مِنْ عِلْمٍ

چې اوڅكو هغوئ | عذاب زمونږه | دوئ ته اووايه | ايا شته ستاسو سره | څه علم

هغوی زمونږ عذاب اوڅكی |.......ورته اووايه چې تاسو سره څه دليل شته

فَتُخْرِجُوهُ لَنَا إِنْ تَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَإِنْ أَنْتُمْ إِلَّا

چې راوباسئ هغه | مونږته | نۀ كوئ پيروی تاسو | مګر | دګمان | اونۀ يئ تاسو | مګر

چې مونږ ته ئې ښكاره كړئ | تاسو خو تش په ګمان چليږئ | (دحقيقت نه بې خبره يئ) او په

تَخْرُصُونَ ۝ قُلْ فَلِلَّهِ الْحُجَّةُ الْبَالِغَةُ فَلَوْ شَاءَ

قياسونه لګوئ | اووايه | پس الله لره دې | دليل | حقيقت ته رسيدلې | نو كه غوښتلې هغه

په اټكل پسې روان يئ | اووايه چې الله ﷻ سره كامل دليل دې | او كه الله ﷻ اوغوښتله

لَهَدَاكُمْ أَجْمَعِينَ ۝ قُلْ هَلُمَّ شُهَدَاءَكُمُ الَّذِينَ

نو لاره به ئې ښودلې وه تاسو | ټولوته | اووايه | راولئ | ګواهان خپل | هغه

نو تاسو ټولو ته به ئې خودنه كړې وه | ورته اووايه راشئ خپل ګواهان راولئ

يَشْهَدُونَ أَنَّ اللَّهَ حَرَّمَ هَٰذَا فَإِنْ شَهِدُوا فَلَا

چې ګواهي كوی | چې بيشكه الله | حرام كړې دی دا څيزونه | نو كه | ګواهي اوكړه دوئ | نو مۀ كوه

چې ګواهي وركړی | چې دا (فلانی) څيزونه الله ﷻ حرام كړې دی | نو كه دوئ پخپله شهادت وركړی

تَشْهَدْ مَعَهُمْ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا

تۀ ګواهي | ددوئ سره | اومۀ كوه پيروی | دخواهشاتو | دهغه كسانو | چې دروغ ګنړی | آيتونه زمونږه

نو ته ورسره شهادت مه وركوه | اودهغې خلقو د خواهشاتو تابعداری مكوه چې زمونږ آيتونه ئې دروغ ګنړلې دی

| وَالَّذِينَ | لَا يُؤْمِنُونَ | بِالْآخِرَةِ | وَهُمْ | بِرَبِّهِمْ |
|---|---|---|---|---|
| اوهغه کسان \| چې ایمان نه راوړي | | په آخرت باندې | اوهغوئ | درب خپل سره |
| اوهغه کسان چې دالله ﷻ په ذات باندې او په آخرت باندې ایمان نه لري\| نو هغوئ د خپل رب | | | | |
| يَعْدِلُونَ ﴿١٥٠﴾ | | | | |
| برابر وي نورڅوك \| | | | | |
| سره نورڅوک برابروي\| | | | | |

**قوله تعالی:: سَيَقُولُ الَّذِينَ أَشْرَكُوا**

**دمشرکانویوبې دلیله دعوی:**-دلته دیوې مناظرې ذکر دې اودمشرکانو یوه شبه ئې ذکرکړې ده چه هغوی د خپل شرك او حرام حلال کولو متعلق لرله. اللهﷻ دهغوی د شرك او دهغوی دتحریم نه هغوی خبروي. هغه شبه دا وه چه هغه زمونږ زړه بدلولې شو مونږ ته ئې د ایمان توفیق راکولې شو اوحاجب کیدوسره ئې مونږ دکفر نه منع کولې شو.نوچه کله اللهﷻ داسې اونه کړل نوثابته شوه چه دهغه رضا او اراده هم داسې ده اوهغه زمونږ په دې کارباندې راضی دې.نو اوونیلې شو﴿لَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا أَشْرَكْنَا وَلَا آبَاؤُنَا وَلَا حَرَّمْنَا مِن شَيْءٍ ۚ كَذَٰلِكَ كَذَّبَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ حَتَّىٰ ذَاقُوا بَأْسَنَا ۗ قُلْ هَلْ عِندَكُم مِّنْ عِلْمٍ فَتُخْرِجُوهُ لَنَا ۖ إِن تَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَإِنْ أَنتُمْ إِلَّا تَخْرُصُونَ﴾یعنی که اللهﷻنه غوښتل نونه به مونږشرك کولواونه زمونږه مشرانواونه به مونږ څه څیز حرام کرخولو.دغه شان به هغوی ونیل﴿لَوْ شَاءَ الرَّحْمَٰنُ مَا عَبَدْنَاهُم﴾نو اللهﷻ فرمائی﴿كَذَٰلِكَ كَذَّبَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ﴾یعنی هم د دې شبه په سبب اولنی خلق هم گمراه شوی وو اودا دیربنکته باطل اودماشومانو غوندې حجت دې. که چرې دا صحیح وو نو دهغوی په مشرانوبه د اللهﷻ عذاب کله هم نه راتلو او هغوی به هلاك کولې نه شو اومشرکانوبه د انتقام عذاب نه څکلو. اې نبیﷺ اووایه چه تاسو ته دادکوم ځای نه معلومه شوه چه ستاسو په دې کارونو اللهﷻ راضی دې.که د دې دعوې څه دلیل وی نو ښکاره ئې کړنی او تاس د دې څه ثبوت ورکولې شئ؟.تاسو خو صرف د خپل قیاس او باطل گمان پیروی کونی.

د گمان نه دلته مراد فاسد عقائد دی تاسو خو صرف اټکل چلونی په اللهﷻ باندې دروغ او بهتان لگونی.دابه مشرکانوونیل مونږ چه کوم ددې بتانوعبادت کوونودې سره زمونږصرف د اللهﷻ نزدیکت لتول مقصددی. اوس اللهﷻ فرمائی چه دې سره به هغوی ته نزدیکت نه حاصلیږی﴿لَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا أَشْرَكُوا﴾

**د اللهﷻحجت کامل دې دعذاب په تاخیر کښې حکمت دې::** پدې کښې هیڅ شك نشته که چرې مونږ غوښتلې نوهغوی ټول به په هدایت وو. ورته اووایه چه حجت بالغه صرف هم د اللهﷻ د پاره دې که هغه اوغواړی نو ټول به په هدایت شنی. اې محمدﷺ ته ورته اووایه چه دهغه حجت خو حجت بالغه دې اوحکمت ئې حکمت تامه دې چه څوك د هدایت مستحق دې او څوك د ضلالت او گمراهنی. هر څیز د هغه په قدرت او اراده کښې دې هغه د مؤمنانونه راضی دې اوکافرانو نه ناراض دې که هغه غوښتل نو ټولو دزمکې اوسیدونکو به ایمان راوړې وې[1]که هغه غوښتل نو ټول به یو قوم او یوملت وو. دهغه وعده به پوره کیږی چه زه به دوزخ دپیریانو او انسانانو نه ډکووم.د بغاوت کولودپاره هیڅ دلیل قانمیدې نه شي. اووایه که چرته تاسو سره څه گواه وی نوهغه راحاضر کړنی چه ددې خبرې گواهی ورکړی چه او اللهﷻ داڅیزونه حرام کړی وو اوکه داسې د دروغو گواه هغوی راوړی هم نو اې نبیﷺ! ته

---

[1] یونس ۱۰\ ۹۹.

داسې گواهي مه ورکوه خکه چه دهغوی دا گواهي بالکل کذب او مکاري ده. دې خلقو سره کېږه مه کوم چه زمونږ د آياتونو تکذيب کوی په آخرت باندې ايمان نه راوړی د خپل رب نه ډډه کوی اودهغه د پاره شريك او برابر گرځوی.

| قُلْ تَعَالَوْا اَتْلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ |
|---|
| اهغوئ ته اووايه \| راشئ \| اچي واوروم \| هغه اچي حراکړې دی \| رب ستاسو |
| \| (اني پيغمبره)دوئ ته اووايه راشئ زه تاسوته وايم چي الله ﷻ په |
| عَلَيْكُمْ اَلَّا تُشْرِكُوْا بِهٖ شَيْئًا وَّبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا ۚ وَلَا تَقْتُلُوْٓا |
| په ستاسو باندې\|چي مه شريکوئ \| دهغه سره\| هيڅ څيز\| اودمورواوپلارسره\|احسان کوئ\| اومه وژنئ |
| تاسوڅه حرام کړي دی \| دا چي الله سره شريک مه جوړوئ\| اومور پلار سره ښه سلوک کوئ\| اوخپل |
| اَوْلَادَكُمْ مِّنْ اِمْلَاقٍ ؕ نَحْنُ نَرْزُقُكُمْ وَاِيَّاهُمْ ۚ وَلَا تَقْرَبُوا |
| اولاد خپل \| ديرې دغريبئ نه\| مونږه \| رزق درکوو تاسوته\| اوهغوئ له\| اومه نزدي کيږئ |
| اولاد د غريبئ دوجي مه قتلوئ\| مونږ تاسوته هم اودوئ ته هم رزق ورکووا او د بې حيائي |
| الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ ۚ وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ |
| دبې حيايئ کارونوته \| هغه \| چي ښکاره وی \| دهغي نه \| اوهغه چي پټ وی \| اومه وژنئ \| نفس |
| خبروته مه نزدي کيږئ\| .....که ښکاره وی او پټې وی \| ...............اوهغه نفس مه قتلوئ |
| الَّتِيْ حَرَّمَ اللّٰهُ اِلَّا بِالْحَقِّ ؕ ذٰلِكُمْ وَصّٰكُمْ |
| هغه \| چي حرام کړې دی الله\| مگر \| دحق سره \| دا هغه خبرې دی \| چي حکم کړې دی تاسوته هغه |
| چي الله ﷻ د هغې قتل حرام کړې وی مگر په حقه\| داهغه خبرې دی چي الله ﷻ تاسو ته ددې وصيت کړې دی |
| بِهٖ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ۝ |
| په دې سره\|ښائي چي تاسو\|دعقل نه کارواخلئ \| |
| دې دپاره چي تاسو عقل نه کار واخلئ\| |

قوله تعالى: قُلْ تَعَالَوْا اَتْلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ.

**اهم اخلاقی او معاشرتی وصيتونه:**-دحضرت ابن مسعود رضی الله عنه نه روايت دې چه څوك د نبی کريم ﷺ آخری وصيت ته کتل غواړی نو دا پورته آياتونه دې اولولی.[۱] حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمانی چه يوڅوآياتونه محکمات دی او هغه ام الکتاب دی. بيا (قُلْ تَعَالَوْا) والا آياتونه اولوستل[۲] د ابن صامت رضی الله عنه نه روايت دې چه حضور ﷺ فرمانيلی چه په تاسوکښې به څوك ماسره د دريوخبرو وعده اوکړی بيا حضور ﷺ (تَعَالَوْا) والا آياتونه ترآخره پورې اولوستل. چه څوك واقعی ددې خبرو پوره والې کوی دهغه اجريه الله ﷻ باندې ثابت دې اوچه څوك په پوره کولوکښې سستی کوی نوممکن دی چه الله ﷻ هغه ته هم په دنيا کښې عذاب ورکړی اوکه د عذاب امر تر آخرت پورې اوچت اوساتی نو هغه وخت د الله ﷻ

---

[۱] ترمذی کتاب تفسير القرآن باب ومن سورة الانعام: ۳۰۷۰.
[۲] حاکم: ۳۱۷/۲.

مرضي ده که غواړي نوعذاب به ورکړي اوکه غواړي نو معاف به ئې کړي([1]) د دې تفسیرداسې دې چه الله ﷻ خپل نبی اکرم ﷺ ته فرمائي اې نبي ﷺ! دې مشرکانوته اووایه څوك چه دغیرالله عبادت کوي اود الله ﷻ حلال حرام ګڼړي اوخپل اولاد قتل کوي دا دشیطان دهوکې دی اودهغوی دخان نه جوړې کړې خبرې دی نو دوی ته اووایه چه راشئ زه تاسو ته ښایم چه الله ﷻ کومې خبرې حرامې خودلې دی. زه دا د اټکل نه اود ګمان نه نه وایم بلکه دالله ﷻ د وحی په بناء باندې چه الله ﷻ سره څوك شریك مه جوړوئی.دآیت دعبارت سیاق دابنائی چه دلته ﴿وصاکم﴾ لفظ محذوف دې یعنی﴿وصاکم ان لاتشرکوابالله﴾ او هم د دې د پاره په آخری آیت کښې اوفرمائیل ﴿ذَٰلِكُمْ وَصَّاكُم بِهِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ﴾ دحضرت ابوذر ؓ نه روایت دې چه حضور ﷺ فرمائیل ماله حضرت جبرائیل ؑ راغلو اودا زیرې ئې راکړو چه څوك مړه شي اوهغه شرك نه وی کړې نوهغه به جنت کښې داخلیږي. ما اوونیل سره د دې که هغه زنا کړې وی غلاتی کړې؟ نوجبرائیل ؑ اوونیل چه او که غلاتی کړې وی اوکه زنائی کړې وی. په دریم ځل ټپوس باندې جبرائیل ؑ اوونیل چه او که شراب ئې هم څکلې وی([2]) بعضې روایتونوکښې دی چه د رسول الله ﷺ نه ټپوس کونکې هم ابوذر ؓ پخپله وو او په دریم ځل حضور ﷺ ابوذر ؓ ته فرمائیلی وو اود ابوذر ؓ پوزه ښکته که زنائی کړې اوکه غلاتی کړې وی. کله چه به حضرت ابوذر ؓ دا حدیث اورولو اود دریم حدیث پوره کولو نه پس به ئې دا خامخا فرمائیل چه د ابوذر پوزه لاندې([3])د حضرت ابو ذر ؓ نه روایت دې چه حضور ﷺ فرمائیل چه الله ﷻ فرمائی اې بنیادمه! ترکومې چه ته زما نه امید ساتې اودعاغواړې زه به تا ښښم کوم څه چه تا نه ګناه کیږي زه به د هغې پرواه نه کوم چه تا څه ګناه کړې ده. که ته ماله د ډکې زمکې هومره ګناه راوړې نو زه به هم د ډکې زمکې هومره ښښنه درکړم په دې شرط چه تا ماسره څوك شریك نه وې ګرځولې. که ستا خطاګانې د ډك آسمان هومره هم وی او تا ښښنه غوښتې وی نو زه به ښښنه درکړم.([4])

د قرآن پاك نه د دې شهادت داسې ملاویږي چه الله ﷻ فرمائی دی الله ﷻ د شرك ګناه نه ښښي باقي ټول ګناهونه چه غواړي نو ښښي([5]) په حدیث کښې دی چاچه شرك نه وی کړې او د توحید قائل وی او مړ شو نو ضرور به جنت ته داخلیږي([6])د دې مضمون متعلق آیاتونه او احادیث ډیر زیات دی. د حضرت ابوالدرداء ؓ نه روایت دې چه شرك مه اختیاروه سره د دې که ستا ټکړې ټکړې کړې شي یا په سولئی کړې شي یا اوسوزولې شي. د ابن صامت ؓ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ مونږ ته د اووه خصلتونو وصیت کړې چه که تاسو ټکړې ټکړې شئ خو شرك اونه کړئی.([7])

**دویم موراوپلارسره ښه کوئی:**-بیا ارشاد دې چه مور پلار سره ښه سلوك کوئی لکه چه فرمائی ستاسودرب حکم دې چه دهغه نه سوا دچا عبادت مه کوئی او مورپلارسره ډیر ښه سلوك کوئی. الله ﷻ په عامه توګه خپل اطاعت سره د مور پلار سره د احسان کولو هم متصل بیان کوی. لکه چه فرمائی

---

[1] )حاکم: ۳۱۸/۲.

[2] ) صحیح کتاب الزکاة باب المکثرون هم المقلون: ٦٤٤٣، صحیح مسلم: ۹٤.

[3] ) صحیح بخاری کتاب اللباس باب الثیاب البیض: ۵۸۲۷، صحیح مسلم: ۹٤، احمد: ۱٦٦/۵.

[4] )احمد: ۱۷۲/۵عن ابی ذر ؓ دارمی: ۳۲۲/۲،ترمذی کتاب الدعوات باب الحدیث القدسی )یاابن آدم انك مادعوتنی...): ۳۵٤، عن انس ؓ وسندحسن )الصحیحه:۱۲۷) اود دې معنې روایت صحیح بخاری:۱۲۳۸ ، صحیح مسلم: ۹۲ کښې هم موجود دې.

[5] ) ٤/النساء: ٤۸.

[6] ) صحیح مسلم کتاب الایمان باب الدلیل علی من مات لایشرك بالله شیئا دخل الجنه...: ۹٤.

[7] ) روایت حسن دې اوګورئی ماهنامة الحدیث: ٦ ص ۱۱.



زما اودخپل مورپلار احسان منئي ستاسو زما طرف ته راتلل دي. كه ستاسومورپلار تاسو په دې خبره مجبوركړي چه ما سره نورڅوك هم شريك جوړكړه كومه چه ستا عقيده نه ده نود هغوى دا خبره مه اوره خو په دنيا كښې هغوى سره ښه سلوك كوه او چه كومه زما طرف ته رجوع ده هغه كوه ستا هم زما طرف ته راواپس كيدل دى كوم خاى كښې چه به زه تا د ټولو اعمالونه خبر كړم. (۱) د مور پلار مشرك كيدوسره هم د هغوى سره د ښه سلوك هدايت فرمائيلې شوې دې او فرمائي چه مونږ د بني اسرائيلونه هم دا وعده اخستې وه چه توحيد اختيارولو سره سره د مور پلارسره نيك سلوك هم ضروري دې. (۲) په دې مضمون باندې ډير آياتونه دى. په بخارى او مسلم شريف كښې دى حضرت ابن مسعودﷺ د نبيكريم ﷺ نه تپوس اوكړو چه كوم عمل غوره دې؟ نو حضورﷺ اوفرمائيل چه په خپل وخت باندې مونځ كول ما بيا عرض اوكړو بيا كوم عمل؟ وئي فرمائيل د مور پلارسره ښه سلوك. ما ونيل بيا كوم عمل؟حضورﷺ اوفرمائيل د اللهﷻ په لاركښې جهاد كول. ابن مسعودﷺ وائي كه ما نورسوالونه كول نوحضرت ﷺ به نورجوابونه راكول(۳) دابن صامتﷺ نه روايت دې چه حضورﷺ اوفرمائيل چه اې ابن صامت! د خپل مور پلار تابعداري كوه كه هغوى تاته داحكم هم دركړي چه ټوله دنيا او دولت مونږ ته راكړه نو وركړه. د دې سند ضعيف دى. والله اعلم.

**دريم اولاد مه قتلوئې**::كله چه مورپلاراونيكونوسره د ښه سلوك هدايت اوفرمائيلو نو اوس د خامنو او نمسو باره كښې فرمائي چه اولاد د تنګدستئي د ويرې نه مه قتل كوئي. د شيطانانو په دهوكه سره به مشركانو خپل اولاد قتل كولو اود شرم اوملامتيا د وجې نه به نې لونړه ژوندئي خښولې او بعض وخت به ئې خامن د تنګدستئي او غريبئي د وجه قتل كول. حضورﷺ فرمائيلي دى چه د ټولونه لويه ګناه اللهﷻ سره شريك ګرځول دى سره د دې چه دا شريكان پخپله د اللهﷻ مخلوق دې. د حضورﷺ نه تپوس اوكړې شو بيا كومه ګناه؟ هغوىﷺ اوفرمائيل چه خامن وژل د دې ويرې نه چه هغوى به هم خان سره په خوراك كښې شريك جوړول وى. تپوس اوشو بيا كومه ګناه؟ وئي فرمائيل د خپل ګاونډى د ښځې سره زناكول. بيا حضورﷺ دا آيت تلاوت كړو ﴿وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ وَلَا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا يَزْنُونَ ۚ وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ يَلْقَ أَثَامًا﴾ (۴)يعني كوم خلق چه اللهﷻ سره نور خدايان نه يوځاى كوى او اللهﷻ د كوم نفس عزت كړې دې هغه نه قتل كوى مكر په حقه خبره باندې او چه څوك زنا نه كوى. ذكر شوى فقيرئ ته "املاق" وائي.ددې د پاره ئې اوفرمائيل چه رزق خوهغوى ته او تاسو ته مونږ دركوو. د رزق په شروع كښې د هغه ماشومانو نوم واخستلو خكه چه اهتمام هم د هغوى نه مقصود وو. يعني هغوى ته رزق رسولو په سبب د محتاجئي نه مه ويريږئي خكه چه د ټولو رزق هم د اللهﷻ په ذمه دې. خودلته فقر حاصله موجوددې په دې وجه ئې اوفرمائيل چه تاسو ته او هغوى ته هم مونږ رزق دركوو، خكه چه دلته هم دغه خبره اهمه ده چه ستاسو رزق هم زمونږ دركړې شوې دې په دې وجه د خپل رزق ويره مه كوئي.

**څلورم زنااو فواحشونه لرې كيدل**:-د اللهﷻ ارشاد دې﴿وَلَا تَقْرَبُوا الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ﴾يعني فواحشو ته نزدې كيږئي هم مه كه هغه ظاهر وى كه باطن. لكه چه فرمائي اووايه اې نبيﷺ! اللهﷻ فواحش ظاهري اوباطني ټول حرام كړى دى اود ګناه او بغاوت نه بې شئي كوم چه د حق نه خلاف دى او د شرك

---

(۱) ۳۱/لقمان: ۱۴-۱۵.

(۲) ۲/البقره: ۸۳.

(۳) صحيح بخارى كتاب الادب باب البر والصله: ۵۹۷۰، صحيح مسلم: ۸۵، ترمذى: ۱۷۳، احمد:۴۵۱/۱، ابن حبان: ۱۴۷۷.

(۴) صحيح بخارى كتاب التوحيد باب قول الله تعالى (فلاتجعلون لله اندادا): ۷۵۲۰، صحيح مسلم: ۸۶، احمد: ۴۳۴/۱، ترمذى:۳۱۸۳، ابن حبان: ۴۴۱۴.

نه بچ شئ د کوم چه هیڅ سند نشته. او د الله ﷻ سره داسې خبرې تړلو نه بچ شئ کومې چه تاسو نه پیژنئ.[۱] ﴿وَذَرُوا ظَاهِرَ الْإِثْمِ وَبَاطِنَهُ﴾ کښې د دې تفسیر تیرشوې دې. د ابن مسعود ﷺ نه روایت دې حضور ﷺ فرمائیلي د الله ﷻ نه ډیر غیرتي بل څوك نه شي کیدې. د دې د پاره هغه ټول فواحش ظاهری او باطنی حرام اوګرځول[۲] سعدبن عباده ﷺ فرمائي که زه خپلې ښځې سره څوك سړې اووینم نو په توره سره به هغه قتل کړم. کله چه حضور ﷺ داخبره واوریده نو وئې فرمائیل چه تاسو د سعد په خبره ولې حیران ئې؟ په الله ﷻ قسم زه د سعد نه زیات غیرت مند یم او الله ﷻ زما نه زیات غیرت مند دې په دې وجه ټول فواحش هغه حرام کړی دی.[۳] او هم په دې سند سره روایت دې چه زما د امت عمر به شپیتو او اویاؤ په مینځ کښې وی.[٤]

**په ناجائزه مسلمان نه قتل کول:**- د الله ﷻ ارشاد دې چه څوك قتل کوئ مه ترکومې چه پرې حق نه وی. حضرت امیرالمؤمنین عثمان ﷺ چه کله باغی قاتلانوراګیرکړې وو وئې فرمائیل چه ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلي دی چه د دریو خبرونه علاوه د یومسلمان وینه تونیول جائز نه دی. چه د اسلام راوړلو نه پس بیا کافر شوې وی. یا د واده سره د زنا مرتکب شوې وی یا ئې څوك ناحقه قتل کړې وی یعني بغیرد قصاص نه. نوپه الله ﷻ قسم ما چرې هم زنا نه ده کړې نه د جاهلیت په زمانه کښې اونه د اسلام په زمانه کښې. اوهیڅ کله هم زما دا خواهش نه دې شوې چه د اسلام راوړلو نه پس بیا خپل دین بدل کړم او نه ما څوك قتل کړې دې نو تاسو ما په څه وجه قتل کول غواړئ.[۵] چه کوم غیر مسلم سره معاهده شوې وی اوکوم حربی ته په اسلامی ښار کښې د اوسیدو د پاره امن ورکړې شوی وی دهغه د قتل کولو سخت وعید او سزا راغلې ده. څوك چه وعده کړې شوې قتل کړی نو د جنت بوئی به هم اونه ګوری حالانکه سره د دې چه د جنت خوشبوئی ترځلوبښتوکالو فاصلې پورې به هم وارسي.[٦] څوك چه یو وعده کونکې قتل کړی د چا د پاره چه دامن ذمه دار جوړشوې وی او څوك چه د الله ﷻ او دهغه د رسول ﷺ به ذمه وارئی کښې راغلې ذمي جوړ شوې وی نو د هغه قاتل ته به د جنت بوئی هم نه نصیب کیږی.[۷] د الله ﷻ ارشاد دې ﴿ذَٰلِكُمْ وَصَّاكُم بِهِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ﴾ دا دی هغه وصیتونه کوم چه تاسو ته شوی څه عجیبه ده چه تاسو ته عقل راشي.

| إِلَّا | مَالَ الْيَتِيمِ | وَلَا تَقْرَبُوا |
|---|---|---|
| مګر | مال دیتیم ته | اومه نزدې کیږئ |
| مګر | اودیتیم مال ته مه نزدې کیږئ........ | |

| وَأَوْفُوا | أَشُدَّهُ | يَبْلُغَ | حَتَّىٰ | أَحْسَنُ | هِيَ | بِالَّتِي |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوپوره کوئ | قوت خپل ته | چې ورسیږی هغه | ترهغې پورې | ډیره ښه وی | چې هغه | په هغه طریقه |
| او.................. | | اورسي | | په بهتره طریقه تردې چې هغه خوانۍ ته | | |

[۱] ۷ /الاعراف:۳۳.

[۲] صحیح بخاری کتاب الایمان سورة الانعام باب قوله تعالی ﴿ولاتقربوا الفواحش ما ظهر منها ومابطن﴾: ٤٦٣٤، صحیح مسلم ۲۷٦۰، ترمذی: ۳۵۳۰، السنن الکبری للنسائی: ۱۱۱۷۳، احمد: ۳۸۱/۱، ابن حبان: ۲۹٤.

[۳] صحیح بخاری کتاب التوحید باب قول النبی ﷺ )لاشخص اغیر من الله( :۷٤۱٦، صحیح مسلم:۱٤۹۹، الاسماء والصفات:٦۳۰.

[٤] ترمذی کتاب الزهد باب ماجاء فی اعمار هذه الامة...:۲۳۳۱ وسنده حسن.

[۵] ابوداؤد کتاب الدیات باب الامام یامر بالعفو فی الدم: ٤۵۰۲، ترمذی: ۲۱۵۸، وسنده صحیح، نسائی: ٤۰۲٤، ابن ماجه: ۲۵۳۳، مسندالطیالسی:۷۲ احمد:٦۱/۱.

[٦] صحیح بخاری کتاب الجزیه باب اثم من قتل معاهدا بغیر جرم: ۳۱٦٦، ابن ماجه: ۲٦۸٦، احمد: ۱۸٦/۲.

[۷] ترمذی کتاب الدیات باب ماجاء فیمن یقتل نفسا معاهدًا: ۱٤۰۳، وهوصحیح، ابن ماجه: ۲٦۸۷، مسندابی یعلی: ٦٤۵۲.

| الْكَيْلَ | وَالْمِيْزَانَ | بِالْقِسْطِ | لَا نُكَلِّفُ | نَفْسًا | اِلَّا |
|---|---|---|---|---|---|
| پیمانه | اوتول | په انصاف سره | نهٔ ورکوو تکلیف مونږ | یونفس ته | مګر |
| پیمانه اوتول په انصاف سره کوئ \| مونږ هیچاته دوس نه زیات تکلیف نه ورکوو | | | | | |
| وُسْعَهَا | وَاِذَا | قُلْتُمْ | فَاعْدِلُوْا | وَلَوْ | |
| مطابق دطاقت دهغه \| اوهر کله \| چې خبرې کوئ تاسو \| نودانصاف خبره کوئ \| اواګر که \| | | | | | |
| او کله چې تاسو خبرې کوئ نو په هغې کښې انصاف کوئ\|............ اګر که | | | | | |
| كَانَ | ذَا قُرْبٰى | وَبِعَهْدِ اللهِ | اَوْفُوْا | ذٰلِكُمْ | |
| وی (معامله) \| درشته دارانو سره \| اوپه وعده دالله \| وفا اوکړئ \| داخبرې چې دی تاسوته | | | | | |
| خپلو سره معامله وی \| اوالله ﷻ سره چې موکومه وعده کړې ده \| هغه پوره کړئ\| ددې | | | | | |
| وَصّٰكُمْ | بِهٖ | لَعَلَّكُمْ | تَذَكَّرُوْنَ | | |
| حکم کړې دې الله تاسوته\| په دې سره\|ښائیږی چې تاسو\|نصیحت قبول کړئ \| | | | | | |
| خبروحکم درته الله ﷻ کړې دې دپاره چې تاسوترې سبق واخلئ اودا چې دغه | | | | | |

**شپږم د یتیم مال ته په ناجائزه مه نزدې کیږئ**

**یوځونورهدایتونه**:-کله چه اللهﷻ دا آیت نازل کړو چه دیتیم مال مه خورئی نوچه د چا په کورکښې څوك یتیم اوسیدو نوهغه د یتیم خوراك څښاك د دې ویرې چه چرته دهغه خوراك زما په خوراك کښې رانه شی د خپل خوراك څښاك نه جدا کړل اود یتیم د خوراك څښاك نه بچ شو نود دې دپاره اوچت کړې شو چه هغه نې دوباره اوخوری اویا خرابیدله.نودا خبره د دوارو دپاره سخته او تکلیف ورکونکې وه، ددې ذکر نبی کریم ﷺ له راغلو نود دې باره کښې د اللهﷻ دطرفنه وحی رانازله شوه چه د یتیمانو باره کښې تانه تپوس کوی نو اووایه چه کومې دخیر خبرې دی اودهغوی خیر غوښتل دی د دې دپاره که تاسو هغوی سره یوځائ خوراك پوخ کړئی او خورئی نو هیڅ بدی نشته هغوی خو هم ستاسو رونړه دی تر بالغ کیدو پورې([1])سدی ﷫ ددې موده ۳۰ کاله ۴۰ کاله بلکه تر(۶۰)کالو پورې خودلې ده. اودا خبرې دلته د بحث نه لرې دی.

**اووم تول پیمانه په انصاف کوئ**:-او پیمانه او تله په انصاف سره استعمالوئی.د اللهﷻ فرمان دې چه په لین دین کښې انصاف کوئی. نود دې لحاظ نه ساتلوکښې سخت وعید دې. ارشاد دې چه هلاکت دې د هغه ناپ کونکودپاره چه کله ناپ کوی نو د بل چانه پوره اخلی او چه کله ناپ یا تول کوی اونوروته نی ورکوی نو بې ایمانی کوی نو آیا دوی ته پته نه لګی چه د قیامت په ورځ اوچتونکی دی او اللهﷻ ته مخامخ کیدل دی([2]) اول یو قوم په دې وجه تباه شوې ووچه په ناپ تول کښې به ئې بې ایمانی کوله.

**اللهﷻ په هیچا باندې د وس نه زیات په چا بوج نه اچوی**:-د اللهﷻ ارشاد دې﴿ لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا ﴾ مونږ په چا باندې هم د هغه دطاقت نه زیاته ذمه واری نه اچوو.چا چه په حق ادا کولو کښې پوره کوشش اوکړو خو بیا هم دهغه نه څه کوتاهی اوشوه نو څه بدی نشته. حضورﷺ د دې آیت باره کښې

---

[1] )ابوداوٗد کتاب الوصایا باب مخالطة الیتیم فی الطعام: ۲۸۷۱، نسائی: ۳۶۹۹، حاکم:۲/۲۷۸.

[2] ) ۸۳/المطففین: ۶۱.

چه په ناپ تول کښې دانصاف نه کارواخلئی، فرمائي چه چا په صحیح نیت ناپ او تول اوکړو نو اللهﷻ خو نیت پیژنی نود هغه به هیڅ نیول نه وی(۱) د لفظ وسعت هم دغه تاویل دې

**اتم په خبرو کښې انصاف کوئی::** اودا ارشاد چه کله خبرې کوئی نو د انصاف خیال اوساتئی سره د دې چه د یو عزیز او رشته دار معامله ولې نه وی لکه چه فرمائي اې د ایمان خاوندانو! عدل او انصاف سره په شهادت باندې قائم اوسیږئی.(۲) دغه شان په سورت نساء کښې اللهﷻ په فعل او قول کښې د عدل حکم ورکوی که د نیزدې د پاره وی اوکه د لرې د پاره وی اللهﷻ د هر یو د پاره او هروخت او په هر حال کښې د عدل حکم ورکوی.

**نهم وعدې پوره کوئی:-** اوفرمائي چه د اللهﷻ وعده پوره کوئی یعنی اللهﷻ چه کوم نصیحت کړې دې هغه پوره کوئی اودهغې داسې خیال ساتئی چه دهغې په امر او نهی کښې دهغه اطاعت کوئی. دهغه په کتاب او سنت رسولﷺ باندې عمل کوئی هم دغه د اللهﷻ د وعدې پوره کول دی.د دې نصیحت اللهﷻ تاسو ته کړې دې ممکن دی چه تاسو پند حاصل کړئی اود تیروشووبدونه منع شئی. بعض خلق ﴿تذکرون﴾ ذال په تشدیدسره لولي اوبعضې په تخفیف سره.

| وَأَنَّ هٰذَا | صِرَاطِيْ | مُسْتَقِيْمًا | فَاتَّبِعُوْهُ ۚ | وَلَا تَتَّبِعُوا | السُّبُلَ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوبیشکه | دا لار زماده | نیغه | انو څئ هم په دې باندې | اومه څئ تاسو | په لارو نورو |
| اودا چې دغه تیرشوې بیان څمالار ده اوپه دې نیغه لار روان شئ اوپه نورو لاروباندې مه څئ | | | | | |
| فَتَفَرَّقَ | بِكُمْ | عَنْ سَبِيْلِهٖ ۗ | ذٰلِكُمْ | | |
| نو خواره واره به کړي | تاسولره | دلارې دهغه نه | دا هغه هدایت دې | | |
| کني دالله ﷻ دلارې نه به موګلا وړ کړي ............................ دا هدایت | | | | | |
| وَصّٰكُمْ | بِهٖ | لَعَلَّكُمْ | تَتَّقُوْنَ ۝ | | |
| چې حکم کړې دې الله تاسو ته | په هغې سره | ښانیرې چې تاسو | خان اوساتئ دغلطو لارونه | | |
| درته الله ﷻ ددې دپاره کړې دې | چه تاسو پرهیزګار جوړ شئ | | | | |

**قوله تعالی: وَأَنَّ هٰذَا صِرَاطِيْ مُسْتَقِيْمًا**

**دهدایت هم یوه لارده،د اللهﷻ اودهغه درسولﷺ اطاعت:-** ارشاد دې چه اخوادیخوانورولاروباندې مه ځئی ګنی نود اللهﷻ د لارې نه به اخواشئی او دین قائم ساتئی او په دین کښې وراني مه اچوئی(۳) په دې قسمه آیاتونوکښې اللهﷻ حکم ورکوی چه ډله مه پریږدئی او په ډله کښې د افتراق او خلاف نه بچ شئی. اولنوخلقو به په دین کښې خصومات او اختلافات راپیدا کول او هم په دې سره تباه شو.(۴)

**دصراط مستقیم مثال:-** عبدالله بن مسعودؓ فرمائي چه حضورﷺ پخپل لاس باندې په زمکه یوه کرخه راښکله او وئې فرمائیل چه دا ده د اللهﷻ نیغه لار بیا ئې ښی طرف ته او ګس طرف ته کرخې راښکلې اووئې فرمائیل چه دا هغه لارې دی چه په دې کښې په هره یوه لار شیطان ناست دې او خپل طرف ته رابلل کوی. بیا ئې دا آیت تلاوت کړو ﴿وَأَنَّ هٰذَا صِرَاطِيْ مُسْتَقِيْمًا فَاتَّبِعُوْهُ ۚ وَلَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَنْ سَبِيْلِهٖ ۗ ذٰلِكُمْ

---

۱) الدرالمنثور: ۱۰۵/۳.
۲) ۴/النساء: ۱۳۵.
۳) ۴۲/الشوری: ۱۳.
۴) الطبری: ۲۲۹/۱۲.

وَصّٰىكُمْ بِهٖ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ﴾.(۱)د حضرت جابر﷜ نه روايت دې چه مونږ حضورﷺ سره ناست وو چه هغوی خپلې مخې ته په زمکه يوه داسې کرخه راښکله اوونی فرمائيل چه داخو شوه د الله ﷻ لار بيائې طرف ته دوه کرخې او ګس طرف ته دوه کرخې راښکلې او وئې فرمائيل چه دا تولې د شيطان لارې دی بيائې دمينځ په کرخه ګوته کيخوده اودا آيت ئې تلاوت کړو﴿وَاَنَّ هٰذَا صِرَاطِيْ مُسْتَقِيْمًا﴾(۲) يوسړی د ابن مسعود﷜ نه تپوس اوکړو چه صراط مستقيم څه څيز دې؟ نو هغه اوفرمائيل چه نبی کريمﷺ مونږ له خپل خان سره خائ راکړې وو. د هغوی نظر مبارك لکه چه په جنت باندې وو اود هغویﷺ ښی طرف ته هم لارې جوړې وې او په ګس طرف هم. په دې باندې خلق وو کوم خلق چه دهغوی په خواکې تيريدل هغوی هغه راغواړې نو څوك چه دهغوی په راغوښتوشوو لارو روان شو هغه دوزخ ته اورسيدل او کوم خلق چه په نيغه لار وو هغه جنت ته اورسيدل بيا ابن مسعود﷜ هم دا آيت تلاوت کړو.(۳)

د نواس بن سمعان﷜ نه روايت دې چه حضورﷺ فرمائيل چه الله ﷻ د صراط مستقيم مثال پيش کړې دې. د دې لارې دواړو طرفوته دوه ديوالونه دی په هغې کښې کولاؤ دروازې لګيدلې دی په دروازو باندې پردې خوری دی او د نيغې لارې په دروازه کښې يو الله ﷻ ته رابلونکې ناست دې او وائی چه اې خلقو! راشئ په نيغه لارکښې ورداخل شئ اخوادېخواخطا کيږئ مه. اويوداعی د دروازې د پاسه ناست دې رابلل کوی کله چه يوانسان د دې دروازونه کومه دروازه کولاووی نو وائی چه په تاباندې افسوس دا مه کولاووه.که دا دې کولاؤ کړه نو په دې کښې به داخل شې. نواوس دا نيغه لار د اسلام ده اودا ديوالونه د الله ﷻ حدونه دی اودا کولاؤ دروازې د الله ﷻ محارم دی اود لارې په دې سر باندې ناست څيز د الله ﷻ کتاب دې اوپه دروازه باندې پاس ناست سړې د انسان خپل ضمير دې چه په خرابوكارونوباندې دهغه په زړه کښې اړوك پيداکوی لکه چه داالله ﷻ واعظ دې(۴) حضورﷺ اوفرمائيل چه څوك شته چه ماسره د دې دريو آياتونو باره کښې وعده اوکړې بيا ﴿تَعَالَوْا﴾ والا آيت تلاوت اوفرمائيلو. دغه دريواړه آياتونه تلاوت کولونه پس چه چاد دې حق ادا کړو د هغه اجر په الله ﷻ باندې مقررشو اوچه چاد دې په پوره کولوکښې کوتاهی اوکړه په دنياکښې هغه ته عذاب ملاؤشواوکه ملاؤنه شو نو په آخرت کښې به الله ﷻ سزا ورکړې ګنې نو معاف به ئې کړې.

| ثُمَّ | اٰتَيْنَا | مُوْسَى | الْكِتٰبَ | تَمَامًا | عَلَى الَّذِيْٓ |
|---|---|---|---|---|---|
| بيا | اورکړې ورمونږه | موسی ته | کتاب | چې دنعمت تکميل وي | په هغه چاباندې |
| بيامونږ موسی ﷺ ته کتاب ورکړو ............چه په نيکانومو نعمت پوره شی | | | | | |
| اَحْسَنَ | وَتَفْصِيْلًا | لِّكُلِّ شَيْءٍ | وَّهُدًى | وَّرَحْمَةً | |
| چې نيکه لارئي اختيارکړې وه | اوتفصيل وي | دپاره دهرڅيز | اوهدايت وي | اورحمت وو | |
| ......................اودهر يو څيز تفصيل اوشی \| اوسر ترسره هدايت اورحمت اوشی | | | | | |
| لَعَلَّهُمْ | بِلِقَآءِ رَبِّهِمْ يُؤْمِنُوْنَ | وَهٰذَا | كِتٰبٌ | اَنْزَلْنٰهُ | |
| دپاره ددې چې شايدخلق | په ملاقات درب خپل ايمان راوړي | اودغه شان دا | کتاب دی | چې نازل کړې دی مونږه | |
| اودې دپاره چه هغوی (بنی اسرائيل) دخپل رب په ملاقات يقين اوساتی \| اودا قرآن پاک يو برکتی | | | | | |

---

[۱] ) احمد: ۴۶۵/۱ وسنده حسن، حاکم: ۲۳۹/۲، ۳۱۸.

[۲] ) ابن ماجه کتاب السنه باب اتباع سنه رسول الله ﷺ: ۱۱، احمد: ۳۹۷/۳.

[۳] ) الطبری: ۲۳۰/۱۲.

[۴] ) ترمذی کتاب الادب باب ماجاء فی مثل الله عزوجل لعباده: ۲۸۵۹ وهوصحيح، احمد ۱۸۲/۴-۱۸۳.

| مُبٰرَكٌ | فَاتَّبِعُوْهُ | وَاتَّقُوْا | لَعَلَّكُمْ | تُرْحَمُوْنَ ﴿۱۵۵﴾ |
|---|---|---|---|---|
| بركتناك دې | نو پيروي اوكړئ ددې | او دپرهيزګارئ ژوند شروع كړئ | شايد چې په تاسو | رحم اوكړې شي |
| كتاب دې چې مونږ نازل كړې دې | په دې عمل اوكړئ | او تقوى اختيار كړئ | شايد رحم درباندې اوشي | |

**قوله تعالى: ﴿ثُمَّ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ - وَهٰذَا كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ﴾**

**دتورات اوقرآن پاک حقانيت:-** ﴿ثُمَّ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ﴾ تقدير دادې چه اې محمد ﷺ! زمونږ متعلق بيادا اووايه چه مونږ موسى ﷺ ته كتاب وركړو په دلالت د قول ﴿قُلْ تَعَالَوْا﴾ خو داخبره دفكرده ﴿ثُمَّ﴾ دلته صرف عطف خبر پس دخبر دپاره دې ترتيب خودلود پاره نه دې د ﴿ثُمَّ﴾ حرف په عام توګه د ترتيب خودلو دپاره راځي دلته چه كله الله ﷻ دخپل ارشاد ﴿وَاَنَّ هٰذَا صِرَاطِيْ مُسْتَقِيْمًا﴾ په ذريعه دقرآن پاك متعلق خبر وركړلو نو دتوريت په مدح د ثم په ذريعه عطف اوفرمائي چه اوس تاسو له دا خبرهم دركولې شي چه مونږ موسى ﷺ ته هم كتاب وركړې وو. په اكثرو ځايونوكښې الله ﷻ د قرآن پاك او تورات په يوځائ يعنى متصلاً ذكر فرمائي. لكه چه فرمائي د دې نه وړاندې دموسى ﷺ كتاب امام او رحمت وو اودا ستاسو كتاب قرآن پاك په عربى ژبه كښې د دې تصديق كوى (١) اود دې سورت په شروع كښې فرمائي تپوس اوكړه دهغه كتاب كوم چه مونږ موسى ﷺ ته وركړې وو كوم چه مونږ دخلقو دپاره نور اوهدايت جوړولوسره پيش كړې وو. هغه چا نازل كړې وو كوم چه تاسو په كاغذونو ليكئى د كوم نه چه څه پټوئى او څه په كښې ښكاره كوئى (٢) بيا ددې نه پس فرمائي چه دا قرآن پاك مونږ مبارك جوړكړې پيش كړو. اوس د مشركانو باره كښې فرمائي چه كله زمونږ د طرف نه حق يعنى قرآن په هغوى باندې پيش كړې شو نو هغوى اووئيل چه هسې كتاب ئې ولې رانه كړو لكه چه څنګه موسى ﷺ ته وركړې شوې وو. اوس الله ﷻ فرمائي چه آيا د موسى ﷺ كتاب سره مو كفر نه ووكړې اوآيا دا مو نه وو وئيلي چه دا دواړه خو جادوګر دى چه راغلي دى مونږ خو به دوى نه منو (٣) اودپيريانو متعلق خبر وركولو سره فرمائي چه پيريانوخپلو خلقوته دا خبر وركړو چه اې قومه! مونږه يو كتاب واوريدو چه د موسى ﷺ نه پس نازل شو اود توريت د مضمون تصديق كوى اود حق طرف ته هدايت كوى (٤) بيا د قرآن پاك متعلق ارشاد دې چه په دې كښې ټولې خبرې ښكلې اوپه تفصيل سره ليكلې دى اودشريعت ټولې خبرې په كښې دى لكه څنګه چه په تورات كښې هره خبره مونږ خودلې وه.

**د احسن نه مراد څه څيز دې:-** دغه شان قرآن پاك ته نې ﴿عَلَى الَّذِيْٓ اَحْسَنَ﴾ اوفرمائيل قوله ﴿وَاِذِ ابْتَلٰٓى اِبْرٰهٖمَ رَبُّهٗ بِكَلِمٰتٍ فَاَتَمَّهُنَّ ۭ قَالَ اِنِّىْ جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ اِمَامًا﴾ او ﴿وَجَعَلْنَا مِنْهُمْ اَىِٕمَّةً يَّهْدُوْنَ بِاَمْرِنَا لَمَّا صَبَرُوْا ڜ وَكَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يُوْقِنُوْنَ﴾ او ﴿ثُمَّ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ تَمَامًا عَلَى الَّذِيْٓ اَحْسَنَ﴾ يعنى موسى ﷺ ته مونږه كتاب وركړوچه په وركړو كښې د ټولونه ښه وركړه ده.چه په دنيا كښې هم احسن او په آخرت كښې هم كامل.ابن جرير رحمه الله ددې تقدير داسې خودلې دې چه ﴿تَمَامًا عَلَى احسانه﴾ لكه چه ﴿الَّذِيْٓ﴾ ئې مصدريه اوګرخولو يعنى هغه كتاب كامل وو د احسن كيدو په بناء باندې لكه چه د الله ﷻ ارشاد دې ﴿وَخُضْتُمْ كَالَّذِيْ خَاضُوْا﴾ اوس دلته ﴿كَالَّذِيْ خَاضُوْا﴾ معنى د خوض شوه.د نورو قول دې چه ﴿الذي﴾ په معنى ﴿الذين﴾ نوعبدالله بن مسعود رضی الله عنه به داسې قراءت كولو ﴿تَمَامًا عَلَى الذين احسنوا﴾ مجاهد رحمه الله ﴿الذى احسن﴾ نه ﴿مومنين﴾ او ﴿محسنين﴾ مراد اخستلو.او بغوى رحمه الله محسنين نه

---

(١) ٤٦/الاحقاف: ١٢.
(٢) ٦/الانعام: ٩١.
(٣) ٦ /الانعام: ٩٢.
(٤) ٢٨/القصص: ٤٨.

انبیاء مراد اخستلو یعنی د تورات فضیلت مونږ په مؤمنین او محسنین باندې ظاهر کړې وو. لکه چه فرمانی ﴿ قَالَ يٰمُوسٰىٓ اِنِّى اصْطَفَيْتُكَ عَلَى النَّاسِ بِرِسٰلٰتِىْ وَبِكَلَامِىْ ۖ فَخُذْ مَآ اٰتَيْتُكَ وَكُنْ مِّنَ الشّٰكِرِيْنَ ﴾. یعنی ای موسی مونږ ته د خپل کلام او رسالت په وجه په ټولو باندې غوره جوړ کړې. دلته دا لازم نه راځي چه د هغه دا فضیلت په محمد او خلیل الله باندې هم وو. یحیی بن یعمراحسن به د زبر په ځای پیش سره لوستلو او وئیل به ئې ﴿الذي هواحسن﴾ په معنی کښې دې په دې وجه په پیش سره کیدل ضروری دی بیانی دا هم وئیلی چه داشان لوستل زه مناسب نه ګنړم سره د دې چه د عربیت په لحاظ سره یوه وجه صحیح هم وی. اووئیلې شوی دی چه معنی دا ده چه ﴿تماماعلی احسان الله الیه﴾

**قران پاک د رحمت او هدایت ذریعه ده:-** اوفرمانی شوچه په دې کښې هر شئی په تفصیل سره دې او هغه هدایت او رحمت دې. کیدې شی چه تاسو د الله په ملاقات ایمان راوړئی. زمونږ نازل شوې دا کتاب مبارك دې د دې تابعداری اوکړئی د الله نه اوویریږئی شاید چه په تاسو د الله رحم اوشی په دې کښې د قرآن پاك د اتباع طرف ته دعوت دې. الله خپلو بندیګانوته د خپل کتاب طرف ته ترغیب ورکوی اوپه دې کښې د تدبرحکم ورکوی.

| أَنْ تَقُولُوٓا | إِنَّمَآ أُنْزِلَ | الْكِتٰبُ | عَلٰى طَآئِفَتَيْنِ | مِنْ قَبْلِنَا |
|---|---|---|---|---|
| چې اونهٔ وایئ | چې بیشکه نازل کړې شوې وو | کتاب | په دوؤډلوباندې | امخکښې زمونږنه |

اوچه تاسودا نشئ وئیلې چې داکتاب خوزمونږنه وړاندې دوه ډلو(یهودونصار) ته ورکړې شوې وو

| وَإِنْ كُنَّا | عَنْ دِرَاسَتِهِمْ | لَغٰفِلِيْنَ ۙ | أَوْ تَقُولُوْا | لَوْ أَنَّآ |
|---|---|---|---|---|
| اوبیشکه وومونږه | دلوستلودهغوئ نه | خامخا ناخبره | یااونه وایئ تاسو | که وې مونږ |

اومونږ ته هیڅ خبر نه ووچې هغوئ په دې کښې څه لوستل اوچه دابهانه هم نشئ کولې که مونږ

| أُنْزِلَ | عَلَيْنَا الْكِتٰبُ | لَكُنَّآ | أَهْدٰى |
|---|---|---|---|
| چې نازل کړې شوې وې | په مونږ باند کتاب | نوخامخابه وومونږ | زیات په صحیح لارا |

باندې کتاب نازل شوې وې نومونږ به دهغوئ نه زیات په سمه لار روان شوی ووا

| مِنْهُمْ | فَقَدْ | جَآءَكُمْ | بَيِّنَةٌ | مِّنْ رَّبِّكُمْ | وَهُدًى |
|---|---|---|---|---|---|
| دهغوئ نه | نوپه تحقیق سره | راغلې دې تاسوته | دلیل روښانه | دطرفه درب ستاسونه | اوهدایت |

بیشکه تاسوته دخپل رب نه ښکاره دلیل او هدایت اورحمت راغلې دې ا.............

| وَّرَحْمَةٌ ۚ | فَمَنْ | أَظْلَمُ | مِمَّنْ | كَذَّبَ | بِاٰيٰتِ اللّٰهِ | وَصَدَفَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اورحمت | انو څوك دې | ډیرظالم | دهغه چانه | چې دروغ اوګڼړی | آیتونه دالله | اومخ واړوی |

.......... ...نودهغه چا نه څوک لوئې ظالم کیدشی چې دالله آیاتونه دروغ ګڼړی اوددې نه مخ

| عَنْهَا ۗ | سَنَجْزِى | الَّذِيْنَ | يَصْدِفُوْنَ | عَنْ اٰيٰتِنَا | سُوْٓءَ |
|---|---|---|---|---|---|
| دهغې نه | زر به بدله ورکړو مونږ | هغه کسانوله | چې مخ اړوی | د آیتونوزمونږنه | اسخت |

اوګرځوی | څوک چې زمونږدآیتونونه مخ ګرځوی | .....نو هغوئ ته به مونږ

| الْعَذَابِ | بِمَا | كَانُوْا | يَصْدِفُوْنَ |
|---|---|---|---|
| عذاب | په سبب د هغې | چې وو هغوی | چې مخ به ئې اړوو |
| ددې انکار په بدله کښې سخت عذاب ورکوو | | | |

**قوله تعالى:: اَوْتَقُوْلُوْا اِنَّمَآ اُنْزِلَ عَلَيْنَا الْكِتٰبُ**

**الله ﷻ کتاب نازل کړو او حجت ئې قائم کړو:**-دې دپاره چه تاسو دا اونه وائې چه په یهودیانو او نصرانیانو خو زمونږ نه اول کتابونه نازل کړې شوی وو او په مونږ باندې یوهم نازل نه شو.دا بیان د هغوی د عذر د ختمولو د پاره دې لکه چه فرمائی که چرې دا خبره نه وه چه د هغوی مصیبت هم د هغوی د اعمالو نتیجه ده نو هغوی به دا وئیل چه اې ربه! که یو رسول تا زمونږ طرف ته هم رالیږلې وې نو مونږ به هم ستاحکم منلې وو.([1])اوارشاد دې﴿وَاِنْ كُنَّا عَنْ دِرَاسَتِهِمْ لَغٰفِلِيْنَ﴾یعنی مونږ خود دې یهودیانو او نصرانیانو په ژبه نه پوهیږو په دې وجه مونږ په غفلت کښې پاتې شو اود دوی په شان صحیح عمل مو اونه کړې شو. اودې د پاره چه تاسو دا اونه وائې که په مونږ باندې هم زمونږ په ژبه کښې کتاب نازل شوې وې نو مونږ به د هغوی نه ډیر په هدایت باندې وو. نو مونږ د هغوی عذر ختم کړو لکه چه فرمائی هغوی قسمونه خوری او بیان کوی که هغوی له هم یو رسول راغلې وې نو مونږ به د ټولونه زیات ښه نیت والا جوړشوی وو او په هدایت به وو([2]) فرمائی چه اوس ستاسو د رب د طرف نه ستاسو د پاره د هدایت اورحمت والا کتاب راغلو اوهم ستاسو په ژبه دا قرآن عظیم دې. په دې کښې د حلالو او حرامو ټول بیان دې اوعبادت کونکو بندیګانودزړونودپاره رحمت دې. بیا فرمائی د الله ﷻ آیاتونه دروغ ګڼړونکو نه لوئ ظالم څوك دې چه نه ئې پخپله د قرآن نه فائده اوچته کړه او نه ئې داحکامو منل اوکړل بلکه د الله ﷻ د آیاتونو د اتباع نه ئې نور خلق هم واړول اود هدایت لار موندلونه ئې هغوی محروم اوساتل. لکه چه د سورت په شروع کښې تیرشو هغوی به پخپله هم د ایمان راوړلو نه منع کیدل اونور به ئې هم منع کول.هغوی به پخپلو لاسونوخپل خان په هلاکت کښې اچولو([3]) اوفرمائی چه کوم خلق کفر کوی او د الله ﷻ د لارې نه نور هم منع کوی هغوی ته به دوچنده عذاب وی([4]) او په دې آیت مبارك کښې فرمائی چه مونږ به دې خلقوته سخت عذاب ورکوو څوك چه د الله ﷻ د لارې نه خلق بندوی. لکه چه فرمائی نه ئې تصدیق اوکړو نه مونځ کوی بلکه تکذیب ئې اوکړو او مخ ئې واړولو([5])غرض دا چه ډیر زیات آیاتونه په دې دلالت کوی چه دا کافران د زړه نه تکذیب کوی او د جوارح نه هم نیك عمل نه کوی.

| هَلْ | يَنْظُرُوْنَ | اِلَّآ |
|---|---|---|
| دوی | انتظارنکوی | مګر |
| آیا دوی صرف ددې خبرې انتظار کوی | | |

| اَنْ | تَاْتِيَهُمُ | الْمَلٰٓئِكَةُ | اَوْيَاْتِيَ | رَبُّكَ | اَوْيَاْتِيَ | بَعْضُ | اٰيٰتِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| دې ته چې | راشی دوی ته | فرښتې | یاراشی | رب ستا | یاراشی | ځینې | نښې |
| چې فرښتې ورته مخامخ په مخامخ راشی \| یا ستا الله ﷻ ورته پخپله راشی \| یا ستا د رب نښې | | | | | | | |

[1] ۲۸ /القصص:۴۷.
[2] ۳۵/فاطر:۴۲.
[3] ۶/الانعام: ۲۶.
[4] ۱۶/النحل:۳۸.
[5] ۷۵/القیامه: ۳۱.

| رَبِّكَ ط | يَوْمَ يَأْتِيْ | بَعْضُ اٰيٰتِ | رَبِّكَ | لَا يَنْفَعُ | نَفْسًا |
|---|---|---|---|---|---|
| درب ستا | په کومه ورځ چې راشي | ځینې نښې | درب ستا | نه به ورکوي فائده | یونفس ته |

ښکاره شي | په کومه ورځ چې ستا د رب ﷻ بعضې نښې راشي | نو هغه چاته به (سمدستې)

| اِيْمَانُهَا | لَمْ تَكُنْ | اٰمَنَتْ | مِنْ قَبْلُ | اَوْ كَسَبَتْ |
|---|---|---|---|---|
| ایمان دهغه | چې نه ئې وي | اراوړې ایمان | دمخکښې نه | یا ئې نه وي کسب کړې |

ایمان فائده نه ورکوي چې دمخکښې نه ئې ایمان نه وي راوړې ...... یا په خپل

| فِيْٓ اِيْمَانِهَا | خَيْرًا ط | قُلِ | انْتَظِرُوْٓا | اِنَّا | مُنْتَظِرُوْنَ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| په ایمان خپل کښې | څه نیکې | اے نبي ورته اووایه | انتظار کوئ تاسو | مونږه (هم) | انتظار کونکي یو |

ایمان کښې څه ګټه (نیکي) نه وي کړې | ورته اووایه (ښه ده) تاسو انتظار کوئ مونږ هم انتظار کوونکي یو

قوله تعالی: هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّآ اَنْ تَاْتِيَهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ

**قیامت اود هغې نښې** :-د رسول ﷺ مخالفینو او کافرانو ته دهمکي ورکولې شي چه تاسو خو صرف د دې خبرې انتظار کوئي چه ملائکې تاسو له راورسي یا رب سره مخامخ شئي اودا د قیامت په ورځ خامخا کیدونکې دي.یا د الله ﷻ بعضې نښې په تاسو باندې کولاو شي اوکله چه هغه نښې کولاو شي نو بیا به چاته هم دهغه ایمان فائده ورنه کړي اودا به دقیامت دراتلونه وړاندې دقیامت دنښویه توګه ضرور کیږي. په بخاری شریف کښې دحضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دې چه حضور ﷺ فرمائي قیامت به نه قائم کیږي ترکومې چه نمر د مغرب نه راونه خیژي اوچه کله خلق داحال اووینې نو ټولو د زمکې اوسیدونکوته به یقین اوشي او ایمان به راوړي اوکه اول ئې ایمان نه وو راوړي نودا ایمان به فائده مند نه شي ثابتې دي.(۱)

**د دریونخښونه پس بیا ایمان فائده نه رسوي**:- دحضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ فرمائیلي که درې څیزونه راښکاره شو نوکه دهغې د ښکاره کیدونه اول ئې ایمان نه وو راوړي نو دې وخت کښې ایمان راوړل بې کاره دي. اوکه اول ئې نیک عملونه نه ووکړي نو اوس ئې کول بې کاره دي. اوله نښه دا چه نمر د نمرختو په ځائې دنمر پریواته نه راوخیژي. دویم د دجال راوتل. دریم دابة الارض ښکاره کیدل(۲)د حضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دې حضور ﷺ فرمائي چه کوم سړی د نمر دمغرب نه راوتلونه وړاندې توبه اوکړه نو توبه به ئې قبوله کړې شي ګنې نونه. (۳) اصحاب سته نه یوکتاب دا نه دي روایت کړي باقي پنځوکتابونوکښې موجود دي.جندب بن جناده ﷺ نه روایت دې چه حضور ﷺ فرمائیلي آیا تاسو ته پته ده چه نمر ډوبیږي نوچرته ځي؟ ماوئیل چه زه نه پوهیږم. وئې فرمائیل هغه عرش ته مخامخ راځي سجده کښې پریوځي بیا اوچتیږي دې د پاره چه ده ته اوونیلې شي چه خپل مخ بدل کړه او اې ابوذر !نیزدې ده هغه ورځ چه ده ته به اوونیلې چه اولته راوګرځه او یاد ساته چه په هغه ورځ په الله ﷻ باندې ایمان راوړل او کفر پریخودل هیڅ فائده نه شي رسولې.(۴)

---

۱ )صحیح بخاری کتاب التفسیرسورة الانعام ﴿لاینفع نفسا ایمانها﴾:٤٦٤٥، صحیح مسلم: ١٥٧، ابوداؤد:٤٣١٢، ابن ماجه:٤٠٦٨، احمد:٢٣١/٢، ابن حبانٔ:٦٨٣٨.

۲ )صحیح مسلم کتاب الایمان باب بیان الزمن الذی لایقبل فیه الایمان :١٥٨، ترمذی:٣٠٧٤، احمد: ١٠٧/١، مسندابی یعلی:٦١٧٢.

۳ ) صحیح مسلم کتاب الذکر والدعاء باب استحباب الاستغفار والاستکثار منه:٢٧٠٣، احمد:٢٧٥/٢، ابن حبان: ٦٢٩.

۴ ) صحیح بخاری کتاب بدء الخلق باب صفة الشمس والقمر:۳۱۹۹، بدون ذکر هذه الایة صحیح مسلم: ۱۵۹، ابن حبان: ۶۱۵۳، السنن الکبری للنسائي: ۱۱۱۷۶.

**یوبل حدیث:-** حضورﷺ د کمرې نه راوتلو مونږ د قیامت باره کښې خبرې کولې ناست وو حضرتﷺ اوفرمائیل چه کله پورې دغه نښې نه وی ښکاره شوی قیامت به نه راځی. د نمر د مغرب نه راختل، یو زبردست لوګی اوچتیدل، دابة الارض راوتل، د یاجوج ماجوج راوتل، دحضرت عیسی ﷺابن مریم رانازلیدل،دجال راوتل درې زلزلې او دزمکې ښکته کیدل،یو مشرق کښې یومغرب کښې یو په جزیره عرب کښې. د عدن د مینځ نه یو اور رانښکاره کیدل د څه په وجه چه به خلق منډې ترړې وهونکې ګرځی. که هغوی چرته د شپې اوده کیدل غواړی نو هلته هم موجود او که چرته سملاستل غواړی نو هلته هم حاضر.([1])حضرت حذیفه ﷺ فرمائی چه ما د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه دمغرب نه دنمر راختلو څه نښه ده. نو هغویﷺ اوفرمائیل چه په هغه ورځ به شپه دومره اوږده شی لکه د دوو شپو برابر. د شپې مونځونه کونکې به راپاسی او چه څنګه به نی تهجد کول هغه شان به کوی، ستوری به په خپل ځاې ولاړ وی ډوبیږی به نه. داخلق به اوده شی بیا به راپاسی بیا به مونځ کوی بیا به اوده شی بیا به راپاسی په ملاسته ملاسته به د هغوی اړخونه اوده شی. شپه به دومره اوږده شی خلق به اوویریږی او سحرکیږی به نه. په دې انتظارکښې به وی چه نمر به د مشرق نه راوخیژی نو ناڅاپې به هغه د مغرب نه راوتلوسره ښکاره شی. نواوس به ایمان څه فائده نه ورکوی. ابن مردویه ﷺ دا روایت کړې دې خو په دې طریقه باندې د صحاح سته په کتابونوکښې موجود نه دې.

**یوبل حدیث:-** صفوان بن عسالﷺ فرمائی چه حضورﷺ فرمائیلی چه اللهﷻ د مغرب طرف ته یوه دروازه کولاؤکړې ده د کومې پلنوالې چه د اویاؤ کالو په مسافت دې. دا د توبې دروازه ده. د نمر د مځ بدلیدو نه وړاندې به نه بندیږی. ([2]) ترمذی، نسائی او ابن ماجه دا لیکلې دې.

**یوبل حدیث:-**یوه شپه به په بندیګانوباندې داسې راځی چه ددریو شپوبرابره به وی،نوچه کله داسې اوشی نوتهجد کونکی به پوهه شی هغوی به نفل کوی او اوده کیږی به پاسی به بیا به مونځ کوی اوبیا به بار بار داسې کوی چه ناڅاپې به یو شور راوچت شی خلق به چغې صورې شروع کړی ویریږی به او جماتونوته به منډې وهی څکه چه نمر به د مغرب نه راختلې وی. اوس به هغه داسمان د مینځ پورې راشی او بیا به مغرب طرف ته واپس به څی. دې نه پس به د روزمره به شان د مشرق نه راوخی هغه وخت به ایمان راوړل بې فائدې وی. دا حدیث غریب دې اود صحاح سته به یوکتاب کښې هم نشته.

**یوبل حدیث:-** درې سړی په مدینه منوره کښې مروان سره وو او هغه د قیامت د نښو ذکر کولو چه د دجال راوتل د قیامت نښه ده. نواوس دا خلق د عبدالله بن عمرﷺ خواته راغله او دمروان نه ئی چه څه اوریدلې وو هغه نی بیان کړل. هغه اوفرمائیل چه مروان خو هیڅ هم نه دی وئیلی. ما چه د رسول اللهﷺ نه څه اوریدلی او یاد مې ساتلی هغه تاسو ته اوروم.اوله نښه دا چه نمر به د مغرب نه راوځی. بیا د دابة الارض راوتل یا به یوه اول او بیا دویمه نښه د دې نه پس ښکاره کیږی.([3])

عمرو بن العاصﷺ نه روایت دې چه حضورﷺ فرمائی چه کله نمر د مغرب نه راوتل کوی نو ابلیس به په سجده کښې پریوځی او چغې به وهی چه یاربه ماته حکم اوکړه چه ته چاته وائې چه سجده اوکړم، نو دهغه ملګری به وائی چه دا دومره تضرع ولې کوی نووائی به چه ما اللهﷻ ته درخواست کړې وو چه معلوم وخت پورې ماته مهلت راکړه اودا نن ورځ هغه د معلوم وخت ورځ ده. بیابه دابة الارض راوځی

---

[1] )صحیح مسلم کتاب الفتن باب فی الایات التی تکون قبل الساعة: ۲۹۰۱، ابوداؤد: ٤۳۱۱، ترمذی:۲۱۸۳، السنن الکبری للنسائی: ۱۱۳۸۰، ابن ماجه: ٤۰٤۱، احمد: ٤/٦، ابن حبان: ٦۷۹۱.

[2] )ترمذی کتاب الدعوات باب ماجاء فی فضل التوبة والاستغفار وماذکر من رحمة الله لعباده: ۳۵۳۵، وهوحسن، ابن ماجه: ٤۰۷۰، احمد: ٤/۲٤۱، ابن حبان: ۱۳۲۱.

[3] ) احمد: ۲/۲۰۱ وسنده صحیح.



اولني قدم چه هغه ایږدی نو په انطاکیه کښې به وی. ابلیس به راشي او هغه له به خپیره ورکړی. (۱) دا حدیث غریب دې، د دې سند ضعیف دې. شاید ابن العاص به دا دهغه ذخیرې نه اخستې وی کوم چه عبدالله بن عمر په جنګ یرموك کښې پروت موندلې وو.والله اعلم. د ابن سعدی نه روایت دې چه حضور فرمائیلی چه هجرت به منقطع کیږی نه ترکومې چه دښمن جنګ کوی او تنګول کوی. د حضرت معاویه او عبدالرحمن بن عوف نه روایت دې چه رسول الله فرمائیل چه هجرت په دوه قسمه دې یوخو د بدونه هجرت کول اود نیکوطرف ته راتلل او دونم د الله او رسول الله طرف ته کول اودا به باقی وی ترهغه وخته پورې چه د توبې دروازه نه وی بنده شوې. اوچه نمر د مغرب نه راوتلې نه وی نو هغه وخت به دهر سړی په زړه مهر اولګی کوم څه چه په هغې کښې دننه دی نو بس هم دغه دی او چه کوم عمل اوشو نو بس اوشو. (۲) دا حدیث د ښه سندوالا دې.

د حضرت ابن مسعود نه روایت دې چه د قیامت د نښونه ټولې تیرې شوې څلور راتلل باقی دی.
①دنمر راختل د مغرب نه، ②دجال، ③دابة الارض، ④یاجوج ماجوج او هغه نښه چه په اعمالوبه مهر لګولې شی هغه د نمر راختل دی. د حضرت ابن عباس نه یو حدیث مرفوعاً ذکر دې حدیث اوږود او غریب دې.ددې سند نشته هغه دا دې چه نمر او سپوږمئی به په هغه ورځ یو ځایٔ د مغرب نه راخیژی او نیم آسمان ته په رسیدوبه اولته واپس راګرځی. (۳) داحدیث منکر او موضوعی دې خود دې د مرفوع کیدو دعوی کړې شوې ده او موقوف د ابن عباس او وهب بن منبه پورې راخی د دې د پاره دا بالکلیه دفع کولې هم نه شو. والله اعلم.

حضرت عائشه نه روایت دې چه د اولې نښې په ښکاره کیدو به د کراماً کاتبین عمل ختم شی او د بدنونو په اعمالوبه د ګواهیٔ ورکولو وخت راشي اودې نه اول به چه څوك د ایمان خاوند وو او نیك عمل به نې کولو هغوی به ډیر په فائده کښې وی اوکه نیك نه وی اوتوبه اوکړی نواوس به د توبې نه څه حاصل شی.د ﴿أَوْكَسَبَتْ فِيٓ إِيمَٰنِهَا خَيْرًا﴾ هم دغه مطلب دې یعنی اوس به عمل صالح نه شی قبلولې چه چا ددې نه وړاندې عمل صالح نه کولو.الله فرمائی اې نبی! اووایه چه د هغه ورځ تاسو هم انتظار کونی او زه هم انتظار کوم دا د کافرانو د پاره سخت خبرداری دې څوك چه د خپل ایمان او توبې نه غافل پاتې شو تردې چه هغه وخت راورسیدو لکه چه فرمائی دا ناپوهه د قیامت د وخت انتظار کوی چه ناڅاپی به راښکاره شی اوچه کله داسې اوشی نوبیا به چرته موقع باقی پاتې شی(۴) ارشاد دې چه کله هغوی زمونږ عذاب اووینی نو وائی به چه مونږ په الله چه واحد دې ایمان راوړې اود شریکانونه منکر شوخو د عذاب لیدلونه اوڅکلونه پس د ایمان ټولې خبرې بې کاره دی. (۵)

| إِنَّ ٱلَّذِينَ | فَرَّقُوا۟ | دِينَهُمْ | وَكَانُوا۟ | شِيَعًا | لَّسْتَ |
|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه هغه کسان | چې توټې توټې نې کړو | دین خپل | اوشو هغوی | دلې دلې | نهٔ نې ته |
| چاچې خپل دین توټې توټې کړو | | ..............اودلې دلې شو | | ............ نو ستا | |

۱) معجم الاوسط: ٩٤، مجمع الزوائد: ١١/٨.
۲) احمد: ١٩٢/١ وسنده حسن.
۳) الدرالمنثور: ١١٤/٣.
۴) ٤٧/محمد: ١٨.
۵) ٤٠/غافر: ٨٤.

| مِنْهُمْ | فِيْ شَيْءٍ | اِنَّمَآ | اَمْرُهُمْ | اِلَى اللّٰهِ | ثُمَّ | يُنَبِّئُهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دهغوئ نه | په هيڅ څيز كښې | بيشكه | معامله دهغوئ | الله ته (حواله ده) | بيا | به هغه خبر كړي هغوئ |
| دهغوئ سره هيڅ تعلق نشته | ددوئ معامله الله ﷻ ته حواله ده | بيا به ورته الله هغه كارونه اوښائي | | | | |
| بِمَا | كَانُوْا | يَفْعَلُوْنَ۞ | | | | |
| په هغه څه | چې وو هغوئ | اچې كول به ئې | | | | |
| كوم چه هغوي كړي | | | | | | |

**قوله تعالى: اِنَّ الَّذِيْنَ فَرَّقُوْا دِيْنَهُمْ**

**په دين كښې تفرقه اچلو خلقوسره دحضورﷺ هيڅ تعلق نشته:-** داآيت ديهوديانواونصارى باره كښې رانازل شوې دې.يهوديانو اونصاراؤ به دحضرت محمدﷺ د بعثت نه وړاندې په خپل مينځ كښې اختلاف كولو او خپل خپل دين به ئې جدا جدا ګرځولو(۱) چه حضورﷺ مبعوث شو نودا آيت نازل شو چه كوموخلقو په خپلودينونوكښې تفرقه اچولې او ډله بازي ئې كړې ستا هغوي سره هيڅ كار نشته اودهغوي هم تاسره څه كار نشته.دا اهل بدعت، اهل شبهات او اهل ضلالت دي اوهم په دې امت كښې دي. (۲) خوبه دې حديث كښې يو سند صحيح نه دې.

**دشِيَعًا نه څوک مراد دي ؟**.حضرت ابوهريرهؓ د دې آيت باره كښې فرمائي چه هم ددې امت باره كښې نازل شوې.(وَكَانُوْا شِيَعًا)نه خوارج مراددي. رسول اللهﷺ حضرت عائشه صديقه ؓ ته فرمائيل چه دې نه اصحاب بدعت مراد دي. داحديث هم غريب دې اومرفوعًا هم صحيح نه دې. ښكاره خبره دا ده چه دا آيت عام دې په هر هغه سړي باندې صادق راځي چه د اللهﷻ د دين نه ئې تفرقه بندي اختياركړې وي اود دين مخالف وي. ځكه چه اللهﷻ خپل رسولﷺ د دين حق د هدايت سره مبعوث كړې دې، دې دپاره چه دين اسلام په ټولو اديانوباندې غالب كړي اود اسلام لار هم يوه ده په دې كښې هيڅ اختلاف او افتراق نشته چاچه جدا فرقه اختياركړه لكه چه اويا(۷۰)فرقووالا،نود اللهﷻ رسولﷺ دهغوي نه برى دې.دا آيت په مثال د دې آيت دې لكه چه فرمائي اې نبيﷺ! ستاد پاره هم مونږ هغه دين خوښ كړو كوم چه د نوح ؑ د پاره وو(۳)په يو بل حديث شريف كښې دي چه مونږ د انبياؤ ډله داسې يو لكه علاتي اولاد ،د علاتي اولاد پلار يو وي زمونږ د ټولو دين هم يو دې (۴)او هم دغه صراط مستقيم دې. اوهم دغه هغه هدايت دې چه ديو اللهﷻ دعبادت متعلق رسولانو پيش كړو اود آخري رسول ﷺ شريعت سره تمسك صراط مستقيم جوړشو. دې نه علاوه ټول څيزونه ضلالتونه او جهالتونه دي اوخپل ذاتي خواهشات دي پيغمبر دې نه خلاص دې. لكه څنګه چه په دې ذكرشوي آيت كښې فرمائي اې نبيﷺ! په تاباندې څه ذمه واري نشته.

**د كافرانو معامله اللهﷻ ته حواله ده:-** بيا ارشاد دې د دې كافرانو امر اللهﷻ ته حواله كړه هغه به د قيامت په ورځ دوى دخپلوعملونونه خبركړي. لكه چه يو بل ځاى كښې فرمائي كومو خلقو چه ايمان راوړ او څوك يهوديان شو يا د ستورو عبادت كونكي او يا چه كوم نصارى او مجوسيان دى او يا مشركان دى د قيامت په ورځ به اللهﷻ د دې ټولو په يو ځاي فيصله اوكړي. (۵) اوس دې نه پس اللهﷻ

---

۱) الطبرى:۱۲/۲۶۹.
۲) د دې په سند كښې عبادبن كثير متروک راوى دې.
۳) ۴۲/الشورى:۱۳.
۴) د دې تخريج سورت مائده آيت ۴۹ لاندې تيرشوې دې.
۵) ۲۲/الحج: ۱۷.

د قيامت په ورځ د خپل حکم او عدالت دننه هم د خپل کرم او مهربانئ داسې بيان کوی.

| فَلَهٗ | بِالْحَسَنَةِ | جَآءَ | مَنْ | | |
|---|---|---|---|---|---|
| نودې هغه لره | دنيکئ سره | چې راغې | هغه څوك | | |
| .............نودهغه دپاره | | چا چې يوه نيکي اوکړه............ | | | |
| إِلَّا | فَلَا يُجْزٰٓى | بِالسَّيِّئَةِ | وَمَنْ جَآءَ | أَمْثَالِهَا ۚ | عَشْرُ |
| مگر | نوبدله به نشي ورکړې کيدې | دبدئ سره | اوهغه څوك چې راغې | مثله اجر دهغې | لس |
| .......نوهغه ته به صرف دخپلې گناه هومره سزا ملاويږي | | | اوچا چه يوه گناه اوکړه | | لس چنده بدله ده |
| | | | لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿۱۶۰﴾ | وَهُمْ | مِثْلَهَا |
| | | | ظلم نه کيږي | اوپه هغوئ به | په مثل دهغې |
| | | | | | په هغوی باندې به هيڅ ظلم نشي کولې |

**قوله تعالى: مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهٗ عَشْرُ أَمْثَالِهَا ۚ**

**دنيکئ ثواب به څوچنده اوبدی به هم يوه ليکلې کيږی**:-دا آيت مبارك په تفصيل سره رنړا اچوی او دې نه پس آيت کښې اجمال دې. ددې آيت متعلق ډيراحاديث دی. دابن عباس﷛ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دلته حضور(د الله ﷻ نه روايت کولو سره فرمائي) ستاسو رب عزوجل ډيرکريم او رحيم دې.که يو سړی د يو نيك کار اراده اوکړه خو په عمل کښې رانه وستلې شو نو بيا هم د هغه د پاره يوه نيکی ليکی اوکه عمل ئې اوکړو نو لس نيکئ ليکلې شی. دا زياتوالې د ښه نيت په لحاظ باندې تر اووه سوو پورې هم رسيدلې شی. اوکه چا د يوې گناه اراده اوکړه خو هغه ئې په عمل کښې نه ده راوستې نو د هغه د پاره هم يوه نيکی ليکی نو که هغه د گناه ارتکاب اوکړی نو گناه لس نه بلکه هم يوه ليکلې شی اوکه اوغواړی نو هغه هم ورانه کړی[1] د حضرت ابوذر﷛ نه روايت دې چه حضور ﷺ فرمائيل چه چا يو نيك عمل اوکړودهغه د پاره لس حصې زيات ثواب دې بلکه دې نه هم زيات. اوکه يوه بدی ئې اوکړه نودهغې سزا هم يوه حصه ده بلکه کيدې شی چه هغه هم معاف شی. څوك چه ماسره ملاؤ شی اود ټولې دنيا هومره خطاگانې ئې هم راوړی وی خو چه شرك ئې نه وی راوړې نو بيا به هم زه په هغه باندې هم دومره مغفرت نازل کړم. څوك چه زما طرف ته يوه لويشت رانزدې کيږی زه دهغه طرف ته يو لاس ورورانډې کيږم او چه څوك يو لاس راورانډې کيږی زه دوه لاسه ورورانډې کيږم او چه څوك زما طرف ته په قدم راروان وی زه دهغه طرف ته په منډه ورځم. ([2])

**د گناه کولو درې قسمونه**:-دلته په دې خبره پوهيدل پکار دی چه کوم سړی د يوې گناه اراده کړې وی او بيائی هغه په عمل کښې هم راوستې وی د دې درې قسمونه دی.کله خوداسې کيږی چه د الله ﷻ نه اووېريږی اوگناه پريږدی. داسې سړی ته هم د گناه پريخودو يوه نيکی ورکولې شی اودا څيز په عمل او نيت باندې موقوف دې په دې وجه دهغه د پاره يوه نيکی ليکه چه په صحيح حديث کښې وارد دی چه ده د گناه کار زما په خاطر پريخودو. اوکله داسې هم کيږی چه د گناه کار هغه سړې سره د ارادې کولو هيريدو سره پريږدی نو اوس دهغه د پاره نه سزا ده او نه جزا.څکه چه هغه خو د خير نيت

[1] ) صحيح بخارى كتاب الرقاق باب من هم بحسنة اوسيئة :٦٤٩١، صحيح مسلم: ١٣١، السنن الكبرى للنسائى: ٧٦٧٠

[2] ) صحيح مسلم كتاب الذكر والدعاء باب فضل الذكر والدعاء والتقريب الى الله تعالى وحسن الظن به...:٢٦٨٧، ابن ماجه: ٣٨٢١، احمد:١٥٣/٥.

نه ووکړي خو دشرکارئی هم نه ووکړي. اوکله داسې هم کيږي چه يو سړي د ګناه کار په عمل کښې د راوستلوکوشش کوی دهغې اسباب راپيداکوی خو عملاً هغه د دې د کولونه عاجز پاتې شي او مجبوره پاتې شي داسې سړې خو د ګناه مرتکب نه شو خو په شان د مرتکب به ګڼلې شي اوده ته به سزا ملاويږی لکه چه په حديث صحيح کښې وارد دی که دوه مسلمانان دوه توري راواخلي او په خپل مينځ کښې جنګيږی نو قاتل او مقتول دواړه دوزخيان دی. خلقو ونيل يارسول اللهﷺ قاتل خو صحيح دې چه هغه به دوزخي وی خودا غريب مقتول به ولې دوزخي وی. نو حضورﷺ اوفرمائيل چه هغه خو هم خپل ملګرې قتل کولو(۱)که د مقتول وار برابرشوې وو نو هم هغه به قاتل وو. نوکه اوس هغه قاتل جوړ نه شو نو دا د يو مجبورئی د وجه نه.حضورﷺ فرمائی چه څوك د يو نيکئی اراده اوکړي نود هغې د کولو نه وړاندې د هغه په نوم يوه نيکی ليکلې شي اوکه په عمل کښې راوستله نو د الله ﷻ د طرف نه لس نيکئی د هغه په عمل نامه کښې ليکلې کيږی خو چه چا د يو بدئی اراده اوکړه نو صرف په اراده به دهغه په نوم بدی نه شي ليکلې ترکومې چه هغه عمل اونه کړي. خو که عمل ئی اوکړو نود لسو بدو په ځای به صرف يوه بدی دهغه په نوم ليکلې شي اوسره د ارادې که د ګناه نه منع شو نو بغير د عمل کولو نه به هم يوه نيکی ليکلې کيږی ځکه چه اللهﷻ فرمائی چه د ده د ګناه نه منع کيدل زما نه د ويرې په وجه وو.

**دخلقو څلور قسمونه:-** دخريم بن فاتك اسدیرضي الله عنه نه روايت دې چه حضورﷺ فرمائی چه خلق څلور قسمه دی او اعمال شپږ قسمه، بعضې خو په دنيااو آخرت دواړوکښې خوش نصيب وی او بعضې په دنيا کښې خوش نصيب وی اوپه آخرت کښې دنصيب خاوندان نه وی.او بعضې په دنياکښې بد نصيب وی او دآخرت په لحاظ سره دنصيب خاوندان اوبعضې بدبخت خوپه دنيااوآخرت دواړوخايونوکښې بدنصيب ثابت شي.

**د اعمالوشپږ قسمونه دا دی:-**دوه قسمه خو واجب کونکی يعنی برابر ته به برابره بدله ملاويږی يا لس چنده يا اووه سوه چنده. نور نتيجه ورکونکی څيزونه دوه دی يعنی که څوك سړې مؤمن مړ شي اوهغه اللهﷻ سره څوك شريك نه وی ګرځولې نو په نتيجه کښې دهغه د پاره جنت دې اوچه څوك کافرمړ شو نو په نتيجه کښې د هغه د پاره دوزخ دې. او چاچه دنيکئی اراده اوکړه خو په عمل کښې رانه وسته شوه نو اللهﷻ خو پوهيږی چه دهغه په زړه کښې دا خبره وه اوهغه دا په عمل کښې د راوستلو حريص وو په دې وجه دده د پاره نيکی ليکلې کيږی. اوچه چا د اللهﷻ په لارکښې څه نفقه اوکړه نوکله خو لس درجې زيات ثواب ملاويږی اوکله دهغه دحسن نيت په سبب اووه سوو پورې اجر کښې زياتوالې کيدې شي(۲)حضورﷺ فرمائی چه د جمعې په مونځ کښې درې کسان حاضريږی يو خو داسې چه د رسم په توګه راغلی وی نودهغه راتلل خو فضول دی اود هغه حصه هم فضول ده. دونم هغه سړې چه جمات کښې حاضريږی اودعاکوی خوکه اللهﷻ غواړی نودهغه دعا قبوله کړی اوکه غواړی نو نه ئی قبلوی. دريم هغه سړې چه جمات ته په داخليدو باندې بالکل خاموش وی د مونځ ګذارو په سټونو باندې نه وړاندې کيږی چاته ديکې نه ورکوی او تکليف نه وررسوی نواوس د راتلونکې جمعې پورې اودې نه پس دريو ورځوپورې نو هم دهغه دا مونځ د ګناهونو کفاره جوړيږی. اودا په دې وجه دی چه اللهﷻ

---

[۱] )صحيح بخاری کتاب الايمان باب ﴿وان طائفتان من المؤمنين اقتتلوا فاصلحوا بينهما...﴾ :۳۱،صحيح مسلم:۲۸۸۸، ابوداؤد: ۴۲۶۸، احمد: ۴۶/۷-۴۷، ابن حبان: ۵۹۴۵، بيهقی: ۱۹۰/۸.

[۲] ) ترمذی کتاب فضائل الجهاد باب ماجاء فی فضل النفقة فی سبيل الله :۱۶۲۵وسنده صحيح، نسائی:۳۱۸۸، احمد:۳۴۵/۴، ابن حبان: ۳۱، ابن ابی شيبه:۳۸/۲.

فرمائي چه تاسو يوه نيکي اوکړئ نو لس حصې اجر به درکړم.([1])
د حضرت ابوذر ﷛ نه روايت دې چه حضور ﷺ فرمائي چه څوك هره مياشت درې روژې اوساتي نو هغه نكه چه د ټول كال روژې اوساتلې دا اجر هم د دې موضوعه اصولو په بناء باندې دې ځکه چه الله ﷻ د دې تصديق په خپل کتاب کښې فرمائيلې([2])؛ يوورځ روژه دلسو ورځوبرابر نويه ټول كال كښې د شپږوديرشو اجر د دريو سوو او شپيتو ورځو اجر جوړيږي. د حضرت ابن مسعود ﷛ نه روايت دې او نور د سلفوديوې ډلې نه نقل دی چه آيت(مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهٗ عَشْرُ اَمْثَالِهَا)كښې حسنه نه مراد كلمه توحيد يعنى (لااله الاالله) دې او(وَمَنْ جَآءَ بِالسَّيِّئَةِ فَلَا يُجْزٰٓى اِلَّا مِثْلَهَا وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ) كښې لفظ(سيئة) نه شرك مراد دې. د دې آيت په تفسيركښې نورهم ډير احاديث راغلي دی خوچه ما کوم بيان کړل هغه کافي دی.

| قُلْ اِنَّنِيْ هَدٰىنِيْ رَبِّيْٓ |
| --- |
| اے نبی اووايه\|بيشکه زه چې يم\|لاربنودلې ماته\|رب زما \| |
| (اني پيغمبره) ورته اووايه ماته زما رب : نيغې لارې \| |
| اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۚ دِيْنًا قِيَمًا مِّلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا ۚ |
| لارې نيغې ته \| دين صحيح \|طريقه \| دابراهيم ﷵ\|چې نيغ په حقه راوان وو |
| خودنه كړې ده \|..........چه هغه محكم دين د ابراهيم طريقه ده چې كوږوالي په كښې نشته |
| وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۝ قُلْ اِنَّ صَلَاتِيْ وَنُسُكِيْ وَمَحْيَايَ |
| اونه وو \| د مشركانونه \| اووايه\|بيشكه\| مونځ زما\|اودعبادت طريقې زما\|اوژوندزما |
| اوهغه دمشركانو په ډله کښې شامل نه وو اورته اووايه چې زما مونځ اوزما ټول عبادتونه اوزما ژوند |
| وَمَمَاتِيْ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ لَا شَرِيْكَ لَهٗ ۚ وَبِذٰلِكَ |
| اومرګ زما \| الله لره دې \|چې پالونکې دمخلوقاتو دې\| نشته شريك \|هغه لره \| اوپه دې باندې |
| اوزما مرګ هرڅه خالص دالله ﷻ دپاره دی \| اوهغه دټول مخلوق پرورد ګار دې \| هيڅوک نې شريک نشته \| ماته هم ددې |
| اُمِرْتُ وَاَنَا اَوَّلُ الْمُسْلِمِيْنَ ۝ |
| حكم راكړې شوې دې ماته \| اوزه \| اول \|حكم منونكې يم |
| حكم راكړې شوې دې \| اوزه دهرچا نه اول دهغه حكمونه منونكې يم\| |

قوله تعالى:: قُلْ اِنَّنِيْ هَدٰىنِيْ رَبِّيْٓ
**په نبی پاك ﷺ د الله ﷻ انعامات**:- الله ﷻ خپل نبی پاك ﷺ ته حكم وركوی چه دوی ته خبر وركړه چه الله ﷻ په رسول الله ﷺ باندې څنګه څنګه انعامات كړی دی.د صراط مستقيم طرف ته نی دهغه هدايت اوكړو په كومه كښې چه هيڅ كوګوالې نشته چه په يو دين باندې قائم دې او ملت ابراهيمی دې. هغه به په يو شان د الله ﷻ عبادت كولو هغه چرې هم شرك نه ووكړې. لكه چه فرمائی د ملت ابراهيم ﷵ نه د ناپوهه نه سوابه بل څوك روګردانی كوی([3])اوفرمائی دالله ﷻ په لاركښې داسې كوشش كوه لكه

---

[1] ) ابوداؤد كتاب الصلوه باب الكلام والامام يخطب: ۱۱۱۳ وسنده حسن.
[2] ) ترمذی كتاب الصوم باب ماجاء فی صوم ثلاثة ايام من كل شهر:۷۶۲، نسائی: ۲٤۱۱، ابن ماجه: ۱۷۰۸،احمد:۱٥٤/٥.
[3] )۲/البقره: ۱۳.

ځنکه چه دکوشش کولو حق دې. هغه ته د ټولو نه غوره جوړکړې نی او د دین متعلق نی په تاسو هیڅ تنګی نه ده ایخودې. داهم هغه ستاد پلار ابراهیم علیه السلام مذهب او مسلك دې(١) اوفرمانی ابراهیم علیه السلام ډیر الله پرست انسان وو هغه ډیر مخلص سړې وو اود شرك نه همیشه دپاره لرې وو د الله تعالی د نعمتونو شکرکونکې وو. مونږ هغه ته په صراط مستقیم باندې هدایت کړې وو. په دنیا کښې هم هغه ته نیکئې حاصلې وې او په آخرت کښې هم د ټولونه په نیکو بندیګانوکښې شامل دې.

**د شرک نه بیزارئی اوپه توحید باندې د قائم کیدلو حکم:-** اوس مونږ ستا طرف ته وحی درلیږو چه د ملت ابراهیم علیه السلام تابعداری اوکړې(٢)په دې اوچتوالی سره دا نه لازمیږی چه نبی اکرم ﷺ ته د ملت ابراهیمی د اتباع حکم دې په دې وجه حضرت ابراهیم علیه السلام دحضوراکرم ﷺ نه اکمل او افضل شو.د دې دپاره زمونږ نبی ﷺ دهغه مسلك په خپله اتباع سره قیام عظیم وراوبښلو اود هغوی د دین تکمیل هم د حضور ﷺ سره اوشو.یو نبی هم د دې دین تکمیل اونه کړې شو اوهغوی ﷺ خاتم الانبیاء دې. د آدم علیه السلام د اولادمطلقًا سردار دې اوپه مقام محمودباندې فائز دې اود قیامت په ورځ به ټول مخلوق هم د حضور ﷺ طرف ته رجوع کوی تردې چه حضرت خلیل الله علیه السلام په خپله هم. ابن ابزی رضی الله عنه د خپل پلار نه روایت کوی وائی چه کله به سحر شونو حضرت نبی کریم ﷺ به فرمائیل چه مونږ په ملت اسلام او کلمه اخلاص باندې سحر کوو.(٣)

**الله تعالی خوښ دین اسلام دې::** دحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه د حضور ﷺ نه تپوس اوکړې شو کوم یو دین الله تعالی ته ډیر خوښ دې؟ حضور ﷺ اوفرمائیل دحضرت ابراهیم علیه السلام دین حنیف. د حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها نه روایت دې چه ما به خپله زنه د حضور ﷺ په اوږه کیخوده اود هغوی ﷺ د شانه به روستو دحبشیانو لوبې کتلې اوچه کله به ستړې شوم نو اخوا به شوم. په هغه ورځ حضور ﷺ فرمائیلې ووچه یهودیان دې په دې خبره خبرشی چه زمونږدین ډیرلوئ دې اوزه دشرك نه بالکل جدا اوسیدونکې دین سره رالیږلې شوې یم(٤) او ونی فرمائیل الله تعالی فرمائ اووایه اې نبی ﷺ! چه زما مونځ او زما ټول عبادتونه زما ژوند او زما مرګ ټول د رب العالمین د پاره دی. اولکه ځنګه چه فرمانی اې نبی ﷺ! ته هم د خپل رب مونځ کوه اوهم د هغه د پاره قربانی کوه(٥) مشرکانوخوبه د بتانو عبادت کولو اود بتانو په نوم به نی قربانی کوله. الله تعالی د هغوی دمخالفت او انحراف حکم ورکوی. اود الله تعالی د طرف نه په اخلاص سره د نیت او عزم حکم دې. ونی فرمائیل زما مونځ او زما عبادت هر څه د الله تعالی د پاره دی. "نسك" دحج او عمره په وخت کښې قربانئی ته وائی. نبی کریم ﷺ د لوئ اختر په ورځ دوه ګډان قربانی کړل اوچه کله نی ذبحه اوکړه نوونی فرمائیل ﴿اِنِّیْ وَجَّهْتُ وَجْهِیَ لِلَّذِیْ فَطَرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ حَنِیْفًا وَّمَآ اَنَا مِنَ الْمُشْرِكِیْنَ﴾(٦)

**دَاَوَّلُ الْمُسْلِمِیْنَ مطلب:-** داول المسلمین نه مراد د دې امت اولنی مسلمان. ټولوانبیاء کرامو به دحضور ﷺ نه وړاندې هم د اسلام دعوت ورکولو.اصل اسلام الله تعالی خپل معبود جوړول دی اوهغه واحد لاشریك ګڼړل دی لکه چه فرمائی مونږ تانه وړاندې څومره هم چه رسولان لیږلې دی د هغه ټولو طرف ته هم دغه وحی وه چه الله تعالی هم یو دې څوك دهغه شریك نشته او هم د هغه عبادت کوئی.الله تعالی فرمائی چه نوح

(١) ٢٢/الحج: ٧٨.

(٢) ١٦/النحل: ١٢٠و١٢٣.

(٣) احمد:٣/٤٠٦وسنده صحیح، عمل الیوم واللیلة:١/١٣٣، دارمی:٢/٢٩٢،ابن ابی شیبه:٦٥٩١..

(٤) احمد:٦/١١٦وسندحسن، مسند الفردوس: ٣/٢/٢.

(٥) ١٠٨/الکوثر:٢.

(٦) ابوداؤد کتاب الضحایا باب مایستحب من الضحایا:٢٧٩٥، وهوحسن، ابن ماجه: ٣١٢١.



ﷺ خپل قوم ته واني كه چرې تاسو زمانه مخ اړونې نو ايا ماتاسونه د تعليم او تبليغ څه معاوضه غوښتې؟ ماته خو به الله ﷻ اجر راكوى ماته حكم دې چه د ټولونه اول زه اسلام راوړم. او وني فرمانيل چه څوك د ملت ابراهيم ؑ نه ډډه كوى هغه ډير ناپوهه دې. مونږه هغه په دنيا كښې هم خوښ كړې دې او په آخرت كښې هم په لويو الله پرستوكښې دې. كله چه اللهﷻ ابراهيم ؑ ته اوفرمانيل چه اسلام راوړه نو هغه زر اوونيل ﴿اَسۡلَمۡتُ لِرَبِّ الۡعٰلَمِيۡنَ﴾.

**د انبياء كرامو وصيتونه:-** ابراهيم ؑ خپلو خامنوته وصيت كړې وواويعقوب ؑ هم چه اې خامنو اللهﷻ تاسو دپاره دادين مخصوص كړې دې.ترهغه وخته پورې مه مرئى تركومې چه مسلمانان نه نى او يوسف ؑ فرمانيلې وو اې ربه! تاماته ملك او دولت راكړو ماته دې د خوبونو تعبير اودخبروتاويل اوخودلو.ته د آسمانونواوزمكو پيداكونكې نى ته په دنيا اوآخرت كښې زما ولى نى.ته ماترمرګه پورې مسلمان اوساته اود مرګ نه پس زما شمير په صالحانوكښې اوكړه[1] موسى ؑ ونيلې وو چه اې خلقواكه تاسو ايمان لرئى نوهم په اللهﷻ باندې يقين اوساتئى نود هغه امت ونيلې وو چه مونږ هم په خپل رب باندې توكل ساتو. اې ربه ته مونږ د ظالمانو نشانه مه جوړوه او په خپل رحمت سره د دې كافرانونه خلاصې راكړه[2] اوفرمائى چه مونږ تورات نازل كړو په كوم كښې چه هدايت او نوردې د كوم په ذريعه چه دهغوى نه پس اسلام راوړونكې انبياؤ به يهوديانو ربانيانو او احبارويه مينځ كښې فيصلې كولې[3] اوفرمائى چه كله مونږ حواريانوته اوونيل چه په ما باندې او زما په رسول باندې ايمان راوړئى نوونى ونيل چه اومونږ ايمان راوړې دې او اې الله ته ګواه اوسيږه چه مونږ مسلمانان يو.[4]

**شريعت محمدى ﷺ سره ټول دينونه منسوخ شو:-** نو اللهﷻ خبرور كړو چه هغه ټولو رسولانوته اسلام وركولوسره ليږلې ووخو دانبياؤ دا امتونه دخپل خپل شريعت لحاظ كولوسره په جداجدا مسلك باندې وو او بعضې نبى به د بعضو فروعى مسلك منسوخ كولو او خپل مسلك به نى جارى كولو تردې چه د شريعت محمدىﷺ په ذريعه باندې نور ټول دينونه منسوخ كړې شو او دين محمدىﷺ به كله هم نه منسوخ كيږى هميشه به قائم او كامياب وى. ترقيامته پورې به د دې دين جهنډې اوولو انبياء

**د ټولو انبياء كرامو عقيد يوه اوشريعتونه جداجداوو:-** په دې وجه حضورﷺ فرمائيلى چه مونږ ټول انبياء كرام علاتى اولاديو يعنى څنګه چه د علاتى اولاد پلاريو وى زمونږ د ټولو دين هم يو دې[5] ټول اللهﷻ وحده لاشريك له منى اوهم د هغه عبادت كوى سره د دې نه چه شريعتونه نى بدل وى. دا شريعتونه په شان د منيندو دى لكه څنګه چه اخيافى رونړه د دې برعكس وى چه مور نى يوه وى او پلاران بيل بيل وى او د حقيقى رور هم يو مور پلار وى نو لكه د امت مثال د سكه رونړو په شان دې.

د حضرت على ؓ نه روايت دې چه حضورﷺ به كله د مونځ تكبير ونيلو نو دا به نى ونيل او شروع به نى كوله ﴿اِنِّيۡ وَجَّهۡتُ وَجۡهِيَ لِلَّذِيۡ فَطَرَ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضَ حَنِيۡفًا وَّمَاۤ اَنَا مِنَ الۡمُشۡرِكِيۡنَ﴾بيا به نى د مانځه نه اول يا روستو دا دعا لوستله﴿اللهم انت الملك لااله الاانت انت ربى وانا عبدك ظلمت نفسى واعترفت بذنبى فاغفرلى ذنوبى جميعًا انه لايغفرالذنوب الاانت واهدنى لاحسن الاخلاق لايهدي لاحسنها الا انت واصرف عنى سيئها لايصرف عنى سيئها الا انت تباركت وتعاليت استغفرك واتوب اليك﴾[6]

---

[1] ۱۲/يوسف: ۱۰۱.
[2] ۱۰/يونس: ۸٦ ۸٤.
[3] ۵/المائده: ٤٤.
[4] ۵/المائده: ۱۱۱.
[5] د دې تخريج په سورت مائدة آيت ۲۸ لاندې تيرشوې دې.
[6] صحيح مسلم كتاب الصلاة المسافرين باب صلاة النبى ﷺ ودعائه بالليل:۷۷۱، ترمذى:۳٤۲۲،ابوداؤد: ۷٦۰، نسائى:۱۲۹۲، احمد:۱۰۲/۱.

| قُلْ أَغَيْرَ اللّٰهِ |
|---|
| ووایه \| آیا بغیر د الله نه \| |
| \| ورته اووایه چې آیا د الله ﷻ نه |

| أَبْغِي | رَبًّا | وَّهُوَ | رَبُّ كُلِّ شَيْءٍ | وَلَا تَكْسِبُ | كُلُّ نَفْسٍ | إِلَّا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| تلاش کړم زه \| بل رب \| او حال دا چې هغه \| رب دې | دهر څیز \| | اونه کسب کوي \| هر نفس \| مګر |
| سوا بل څوک رب اولټوم \| حال دا دې چې صرف هغه دهر څیز رب دې \| او څوک چې کوم ګناه کوي |

| عَلَيْهَا | وَلَا تَزِرُ | وَازِرَةٌ | وِّزْرَ | أُخْرَىٰ | ثُمَّ |
|---|---|---|---|---|---|
| ذمه واري ئې په هغه باندې ده \| اونه بار کوي \| يو بار اوچتونکې \| بار \| دبل چا \| بیا |
| هم هغه ته به ئې سزا ملاویږي \| او هیڅوک دبل چابوج نشي اوچتوی \| بیا به تاسو ټول الله ﷻ ته |

| إِلَىٰ رَبِّكُم | مَّرْجِعُكُمْ | فَيُنَبِّئُكُم | بِمَا | كُنتُمْ |
|---|---|---|---|---|
| رب ستاسو ته \| واپس تلل دي ستاسو \| نو خبر به کړي تاسو \| په هغه څه \| چې وئ تاسو |
| پیش کیږي \| نو هغه به تاسو ته هغه خبرې ښکاره کړي \| کومو کښې چې به |

| فِيهِ | تَخْتَلِفُونَ ﴿١٦٤﴾ |
|---|---|
| په هغې کښې اختلاف به موکوؤ \| |
| تاسو اختلاف کولو \| |

**قوله تعالی:: وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ**

**اسلافوته داخلافو د نیکواعمالوثواب ملاویږي خو دي بد به بل نشي اوچتولی:** ای نبي ﷺ! دې مشرکانو ته د اخلاص دعبادت او توکل باره کښې اووایه چه آیا زه رب پریږدم او څوك بل رب جوړکړم اوحال داچه هغه خودهرهغه څه رب دې کوم چه زه رب جوړکړم هغه رب یوازې زما تربیت کوی اوزما حفاظت کوی او زما په هرکارکښې زما مدبر دې پس زه خو به د هغه نه بغیر دبل چا په وړاندې ټیټ نه شم څکه چه ټول مخلوق هم دهغه دې او دحکم حق صرف هغه لره دې. مقصد دا چه په دې آیت کښې د اخلاص او توکل حکم دې لکه چه ددې نه وړاندې آیت کښې دعبادت د اخلاص تعلیم وو اودا مضمون په قرآن پاك کښې په کثرت سره یو بل سره یوشان لیدلی کیږي لکه چه الله ﷻ فرمائي چه نه داسې اووایه چه مونږهم ستا عبادت کوو او هم تانه امداد غواړو (١)

اوفرمائي چه هم د هغه عبادت کوه اوهم په هغه باندې یقین ساته او فرمائي چه اووایه هغه رحمن دې مونږ ایمان راوړې او هم په هغه باندې توکل کوو(٢) او فرمائي چه هغه د مشرق او مغرب رب دې هغه الله ﷻ یوازې دې هم هغه الله ﷻ خپل وکیل اوګرځئ(٣) اونور هم د دې په شان آیاتونه شته. فرمائي چه که یو سړې نامناسب عمل اوکړي نودهغه د ګناه رد عمل به هم په هغه باندې وي. د یود ګناه بوج به بل نه اوچتوی اودهغه کفاره به نه جوړیږي. د دې آیاتونو په ذریعه خبر ورکولې شي چه د قیامت په ورځ

---

(١) ١/الفاتحه: ٥.
(٢) ٦٧/الملك: ٢٩.
(٣) ٧٣/المزمل: ٩.

به چه کومه سزا وی هغه به د حکمت او عدل په بنیاد وی.د اعمالو بدله به هم عمل کونکوته ملاویږی. که نیکی کړې وی نو نیکه بدله اوکه بدی ئی کړې وی نو بده بدله دیو خطابه د بل په سر نه شی اچولې.هم دغه خو د هغه انصاف دې لکه چه فرمائی که د ګناه کار څوك کوی نود هغې بوج به بل څوك نه اوچتوی که د هغه څومره نیزدې خپلوان ولې نه وی ([1])

د ظلم او هضم مطلب.- ﴿فَلَا يَخَافُ ظُلْمًا وَلَا هَضْمًا﴾په تفسیرکښې علماؤ وئیلې دی چه په چا به هم ظلم نه شی کولې چه دبل د ګناه بوج په خپل سر واخلی اونه به دا ظلم وی چه د هغه د نیکئی نه به څه کمی کولې شی او فرمائی چه هر یوکس به د خپل بدعمل په وجه راګیر وی دسزا ملاویدلو پورې به خلاصې نه وی خو اصحاب یمین ([2])یعنی د ښی طرف والا به آزاد وی چه د هغوی دنیکو اعمالوبرکت به دهغوی اولاداوخپلوانوته اورسی. لکه چه په سورت طورکښې فرمائی چه څوك ایمان راوړی اود هغوی په اتباع کښې د هغوی اولاد هم مؤمنان جوړیدې شی نود اولاد د ایمان او نیك عمل اثر د هغوی اسلافوته رسی. یعنی اسلافوته د اخلافو د نیکو اعمالو ثواب ملاویږی خوداخلافود اجر نه به کمې نه شی کولې او دجنت اوچتو درجو ته چه دهغوی نیك اولاد رسیدلې دې دهغوی اسلاف به هم اورسولې شی. اودځوئ د نیکو بدله به پلارته هم ملاویږی سره د دې چه هغه دځوئ په نیکو اعمالوکښې شریك نه وو.اود دې اخلافو داوچتو درجو په ثواب کښې به څه کمې نه شی کولې. او دواړه به مونږ برابر کړو بلکه خامن به هم د پلارانو دعملونو په برکت هغوی ته اورسولې شی.دا دهغه خاص فضل دې. او فرمائی چه هریو سړې د خپلو کړو د پاره ګانړه دې یعنی په خپلو بدکردارو کښې دننه دې. بیافرمائی چه تاسو به هم خپل رب ته واپس راګرځئ. یعنی چه څه کول غواړئ په خپل ځائ کوئ او مونږ به هم په خپل ځائ خپل کار کوو. آخر تاسو به یو ورځ زمونږ مخې ته راځئ او هغه الله ﷻ به ټول مؤمنان او مشرکان د هغوی د عملونونه خبر کړی. او په دنیاکښې چه د آخرت باره کښې کوم کوم اختلاقات ساتل ټول به ښکاره کړې شی. اوونی فرمائیل چه اې نبی ﷺ! اووایه چه تاسو کوم ګناهونه کړې وی د هغې باره کښې به زمونږ نه سوال نه کیږی اوزمونږ د عملونو تپوس به تاسونه نه کیږی. الله ﷻ به مونږ ټول راجمع کړی بیا به په حق او انصاف سره فیصله کوی هغه فتاح علیم دې.([3])

| وَهُوَ | الَّذِي | جَعَلَكُمْ خَلَٰٓئِفَ | الْأَرْضِ |
|---|---|---|---|
| اوهغه | هغه ذات دې | چې جوړې کړئ تاسوخلیفګان | دزمکې |

اوالله ﷻ هغه ذات چې تاسونې په زمکه خلیفګان جوړ کړی یئ

| وَرَفَعَ | بَعْضَكُمْ | فَوْقَ بَعْضٍ | دَرَجَٰتٍ | لِّيَبْلُوَكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| اوپورته ئې کړل | اخینی ستاسو | دپاسه | دخینو | په درجوکښې | دپاره ددې چې آزمیښت اوکړی ستاسو |

اوتاسو کښې ئې بعضو ته په نورو بعضو اوچتې درجې ورکړی دی | چې په ستاسوباندې په هغه

| فِي مَآ | ءَاتَىٰكُمْ | إِنَّ | رَبَّكَ | سَرِيعُ | الْعِقَابِ |
|---|---|---|---|---|---|
| په هغه څه کښې | چې درکړی ئې دی تاسوته | بیشکه | رب ستا | ډیر تیز دی | په سزا ورکولو کښې |

هغه نعمتونو کښې امتحان اوکړی کوم چې ئې تاسوته درکړی دی | بیشکه الله په سزا ورکولو کښې تیز دې

[1] ۳۵/فاطر:۱۸.

[2] ۷٤/المدثر: ۳۸.

[3] ۳٤/سبا:۲۵-۲٦.

| وَإِنَّهُۥ | لَغَفُورٌ | رَّحِيمٌۢ ﴿١٦٥﴾ |
|---|---|---|
| او بیشکه هغه | خامخا ښنونکې | رحم کونکې دې |
| اوهغه ډیر ښنونکي اومهربان ذات دې | | |

قوله تعالی:: لِّيَبْلُوَكُمْ فِي مَآ ءَاتَىٰكُمْ

**د درجو تقسیم یوازمیښت دی:**-ارشاد دې چه تاسو به یوبل پسې په زمکه کښې کلی آبادول اود اسلافو نه پس به داخلافو زمانه راتله. اود یو بل جانشین شوئی لکه چه فرمانی که چرې مونږ غوښتلې نو ستاسوجانشین به مو ستاسو اولاد یا بل څوك جوړولو په ځای فرښتې جوړولې او تاسونه پس به هغوی ستاسو ځای نیولې اوفرمانی چه دا زمکه هغه تاسو ته یوبل پسې درکړې ده او ونی فرمائیل چه زه به زمکه کښې یو خپل خلیفه جوړول غواړم. اوونی فرمائیل چه زردې چه ستارب به ستاسو دښمن هلاك کړي او تاسو به د هغه په ځای راولي او بیا دا ګوره چه تاسو ددې نه پس څه کردار پیش کوئی. اوفرمائی چه یودپاسه بل درجې جوړې کړې دی یعنې رزقونه اخلاق او محاسن اومساوی مناظر او اشکال په دې تولوکښې یو دبل نه کم زیات دی. لکه چه اوفرمائیلې شو مونږ دهغوی په دنیاوی ژوندکښې د هغوی شریك معیشت تقسیم کړو اودبعضو درجې په بعضوباندې اوچتې کړې([1])څوك امیردې څوك غریب دې څوك آقا دې او څوك نوکر. اوونی فرمائیل چه غور خو اوکړئی چه چاته په چا باندې څنګه غوره والې اوترجیح ورکوو خود دنیاوی درجونه قطع نظر د آخرت درجې ډیر لوئ ځیزدې او ډیر غوره والې لری. اوفرمائی چه د درجو دا فرق په دې وجه دې چه مونږ تاسو ازمیښت کړو. دولت مندته په دولت ورکولوبه د هغه نه تپوس کولې شی چه ددې دولت شکردې څنګه اداکړې وو. اود غریب نه به تپوس کولې شی چه په خپله غریبئی دې صبرهم کړې وو که نه.

**ښځه غټه فتنه ده**-ابوسعیدخدری ؓ نه روایت دې چه حضور ﷺ فرمائیل چه دنیا تازه او آباده ده الله ﷻ د نورو نه پس تاسوته د دنیا نه فائده اوچتولو موقع درکړې ده اوتاسو ئې دهغوی جانشین جوړکړئی اوس به مونږ ګورو چه د هغوی نه پس به اوس تاسو څه کردار اداکوئی. اې خلقوا د دنیا نه اوویرېږئی او د ښځونه اوویرېږئی ړومبئی فتنه چه کومه بنی اسرائیلوکښې پیدا شوې وه هغه هم د ښځو متعلق وه([2]) اوفرمائی چه الله ﷻ ډیرزر سزا ورکونکې دې.یعنی د دنیا ژوند به ډیر زرختم شی او عاقبت او سزا سره به مخ شنی او هغه ډیر غفور او رحیم هم دې.

دلته ویره هم ورکولې شی او ترغیب هم ورکولې شی چه د دې حساب او عقاب به ډیر زر راشی اود الله ﷻ نافرمانی او د رسولانومخالفت کونکی به ډیر راونیولې شی. چا چه الله ﷻ دوست جوړکړو نو الله ﷻ دهغه کارساز دې او ښنونکې اومهربان دې. په اکثرو ځایونوکښې په قرآن پاك کښې دا دواړه صفتونه یعنی غفور او رحیم همیشه په یوځای راغلې دی. لکه چه فرمائی ستا رب دخپلو بندیګانو د ګناهونو ښنلوباره کښې ډیر ښنونکې دې. اودې سره دهغه نیول هم ډیر سخت دی([3])او ونی فرمائیل اې نبی ﷺ!زمابندیګانوته اووایه چه زه ښنونکې او مهربان یم او زما عذاب هم ډیرسخت دې. ([4]) ترغیب اوترهیب باندې مشتمل آیاتونه ډیر زیات دی. کله خو بندیګانوته د جنت صفتونوبه بیانولو

---

[1]) ٤٣/الزخرف: ٣٢.

[2]) صحیح مسلم کتاب الرقاق باب اکثر اهل الجنة الفقراء واکثر اهل النار النساء.....: ٢٧٣٢، ترمذی: ٢١٩١، ابن ماجة: ٤٠٠٠، احمد:19/٣، مسند ابی یعلی:١١٠١، ابن حبان: ٣٢٢١.

[3]) ١٣\الرعد: ٦.

[4]) ١٥/الحجر: ٢٩

سره ترغیب ورکوی اوکله د دوزخ ذکر فرمانیلوسره نی د هغې دعذاب نه اود قیامت تباهونه ویروی او کله په یو ځایٔ د دواړو ذکر فرمانی. الله ﷻ دې په خپلو احکاموکښې مونږ اطاعت گذار جوړکړی اود گناهگارو د ډلې نه مو دې لرې اوساتی.

قوله تعالی: إِنَّ رَبَّكَ سَرِيعُ الْعِقَابِ

د الله ﷻ دعذاب اود هغه درحمت عظمت-رسول الله ﷺ فرمانیلی که مؤمن ته دا معلومه شی چه د الله ﷻ عذاب څومره سخت دې نو څوك به د جنت طمع قدرې اونه کړی وانی به چه ددوزخ نه خلاصې بیاموم نو بس دې اوکه کافر دا معلومه کړی چه د الله ﷻ رحمت څومره زیات دې نو هغه به هم د جنت نه نااميده نه شی حالانکه دهغه د جنت هیڅ حق نشته. الله ﷻ د رحمت سل حصې ساتلې دی په دې کښې نی یوه حصه په ټولو مخلوقاتوکښې تقسیم کړه هم د دې حصې په ورکولوکیدوباندې خلق اوځناور په یوبل باندې رحم او همدردی کوی او باقی یوکم سل حصې د رحم الله ﷻ خپل ځان سره ساتلې دې. (۱) دې نه اندازه کیدې شی چه د هغه رحم به څومره زیات وی. حضور ﷺ فرمانیلی دی چه کله الله ﷻ مخلوقات پیدا کړل نو په خپل کتاب لوح محفوظ کښې نی اولیکل کوم چه هغه سره د عرش د پاسه دې چه زما رحمت به زما په غضب باندې غالب وی(۲) هم د دې یوې حصې دا برکت دې چه ځناور غوا اوبنه وغیره بچې هم دچقنړی کولونه بچ کیږی اوکه بچې دپښولاندې راځی نو بچ کیږی ترې او احتیاط ورسره کوی.(۳)

| آیاتونه | | سورة الاعراف مكية وهي مائتان وست ايات واربع وعشرون ركوعا | | رکوع گانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ | | |
| ۲۰۶ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | | ۲۴ |

| الْمَصَ ۞ | كِتَابٌ | أُنزِلَ | إِلَيْكَ | فَلَا يَكُن | فِي صَدْرِكَ |
|---|---|---|---|---|---|
| ال م ص | دایوکتاب دې | چې نازل کړې شوې دې | تاته | نو نهٔ دې وی | په سینه ستاکښې |

.......دا قران پاك یو کتاب دې چې تاته نازل شوې دې | نوستا سینه دې په دې خبره نه

| حَرَجٌ | مِّنْهُ | لِتُنذِرَ | بِهِ | وَذِكْرَىٰ | لِلْمُؤْمِنِينَ ۞ |
|---|---|---|---|---|---|
| خه تنگی | ددې نه | دپاره ددې چې اوویروې ته | په دې سره | اونصیحت دی | دپاره دمومنانو |

تنگیږی | چې خلق پرې (دالله ﷻ دنیولونه) ویروې | اومومنانوته پرې نصیحت کوې

| اتَّبِعُوا | مَا | أُنزِلَ | إِلَيْكُم | مِّن رَّبِّكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| پیروی اوکړئ | دهغې کتاب | چې نازل کړې شوې دې | تاسو ته | دطرفه درب ستاسونه |

اوتاسو په هغه (کتاب) عمل کوئ چې تاسو ته دخپل رب طرفنه راغلې دې |

---

۱) احمد: ۲/ ۴۸۴، وهوصحیح دَدې معنی روایت صحیح مسلم: ۲۷۵۵ کښې هم موجود دې.

۲) صحيح بخاری كتاب التوحيد باب قول الله تعالى (ويحذركم الله نفسه): ۷۴۰۴، صحیح مسلم: ۲۷۵۱، ترمذی: ۳۵۴۳، ابن ماجه: ۴۲۹۵، ابن حبان: ۶۱۴۳، احمد: ۲/ ۳۱۳.

۳) صحیح بخاری کتاب الادب باب جعل الله الرحمة في مائة جزء: ۶۰۰۰، صحیح مسلم: ۲۷۵۲، ابن حبان: ۶۱۴۸.

| وَلَا تَتَّبِعُوْا | مِنْ دُوْنِهٖٓ | اَوْلِيَآءَ | قَلِيْلًا مَّا | تَذَكَّرُوْنَ۝ |
|---|---|---|---|---|
| اومه کوئ پیروي | بې د الله نه | دنوروسرپرستانو | ډیرکم دي | هغه چي تاسونې قبلوئ |

اود الله نه سوا د نورو مشرانو تابعداري مکوئ (خو افسوس) چي تاسو ډیر کم نصیحت قبلوي

**قوله تعالى ::وَذِكْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ۝**

**قرآن پاك نصيحت او دهدايت كتاب دي:-** حروف مقطعات دهغې د معنې اودې سره متعلق د اختلاف باره کښې په سورة بقره کښې خبره تيره شوې ده. ﴿الٓمٓصٓ يعني انا الله افضل﴾ دا کتاب ستاد رب د طرف نه نازل شوې دې اوس د دې په تبليغ کښې په خپل زړه کښې څه کوتاهي مه راوله. اوداسې صبر اختيار کړه لکه چه اولوالعزم پيغمبرانو عليهم السلام اختيارکړې وو. د دې دنازلولو مقصد دا دې چه د دې په ذريعه کافران اوويروه او مؤمنانود پاره خو دا قرآن پاك نصيحت دې. مؤمنانوخود نازل شوي قرآن پاك اتباع کړې ده او نبي امي ﷺ چه کوم کتاب پيش کړې دې دهغه په نقش قدم باندې روان دي. اوس دا مه پريږده چه غيرپسې روان شې او مه د الله ﷻ د حکم د دائرې نه وتلوسره د غير په حکم روان شې. خو عبرت او نصيحت حاصلونکي ډير کم دی اوته ټولوته عبرت هم نه شې ورکولې که هر څومره کوشش او حرص ولې اونه کړې. اوفرمائي چه که ته دهرڅاد خوشحالولو کوشش کوې نودا خلق به تا د الله ﷻ لارې نه واړوي[1] اکثر خلق ايمان نه راوړي او مشرکان پاتې کيږي.[2]

| وَكَمْ مِّنْ قَرْيَةٍ | اَهْلَكْنٰهَا | فَجَآءَهَا | بَأْسُنَا | بَيَاتًا |
|---|---|---|---|---|
| اوډير د کلونه | چي هلاك کړل مونږه هغه کلي | نوراغي دغه کلوته | عذاب زمونږه | دشپې |

اوڅومره ډير کلي وو چي مونږ تباه کړل نوهغوئ ته زمونږ عذاب راغلو په داسې وخت کښې راغلو چي شپه وه

| اَوْ هُمْ | قَآئِلُوْنَ۝ | فَمَا كَانَ | دَعْوٰىهُمْ | اِذْ | جَآءَهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| ياهغوئ | دغرمې خوب کونکي وو | پس نه وه | ويناد هغوئ | کله چي | راغي هغوئ ته |

يا دا چي هغوئ دغرمې په خوب اوده وو نود عذاب په وخت کښې دهغوئ په خوله باندې ددې وينا

| بَأْسُنَآ | اِلَّآ | اَنْ قَالُوْٓا | اِنَّا كُنَّا | ظٰلِمِيْنَ۝ | فَلَنَسْئَلَنَّ |
|---|---|---|---|---|---|
| عذاب زمونږه | مگر | وئيل به ئې | بيشکه وو مونږه | ظالمان | پس خامخا به تپوس کوو مونږه |

نه سوا بل څه نه وو چي بيشکه مونږ ظالمان وو ........ مونږ به ضرور دهغه خلقونه تپوس کوو

| الَّذِيْنَ | اُرْسِلَ | اِلَيْهِمْ | وَلَنَسْئَلَنَّ | الْمُرْسَلِيْنَ۝ |
|---|---|---|---|---|
| دهغه کسانونه | چي ليږلې شوی دی | هغوئ ته | او خامخا به تپوس کوو | مونږه درسولانو نه |

چي پيغمبران ورته ليږلې شوي وو او د پيغمبرانو نه به هم ضرور تپوس کوو (چه تاسو زما پيغام رسولې وو که نه)

---

[1] ٦/الانعام: ١١٦.
[2] ١٢/يوسف: ١٠٦.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَلَنَقُصَّنَّ | عَلَيْهِم | بِعِلْمٍ | وَّمَا كُنَّا | غَآئِبِينَ۞ | وَالْوَزْنُ |
| پس خامخا به بیان کړو مونږه | په هغوئ باندې | علم سره | اونه یو مونږه | غائب | او وزن به |

اوبیابه ورته دهغوئ د اعمالو ټوله قصه په یقین سره بیان کړو | آخر مونږ خوناخبره نه یو | او په دغه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يَوْمَئِذٍ | الْحَقُّ | فَمَن | ثَقُلَتْ | مَوَازِينُهُ | فَأُولَٰٓئِكَ | هُمُ |
| په دغه ورځ | حق وی | نو هغه څوك | چې درنې شوې | تلې دهغه | نو دغه کسان | هم هغوئ |

ورځ د عملونو تول حق دې | نوچې دچا د(نیک عمل) تله درنه شی | نو هم دغه خلق به

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الْمُفْلِحُونَ۞ | وَمَنْ | خَفَّتْ | مَوَازِينُهُ | فَأُولَٰٓئِكَ | الَّذِينَ |
| خلاصې موندونکې دی | او هغه څوك | چې سپك شو | تولونه دهغوئ | پس دغه | هغه کسان دی |

کامیاب وی | اوچې دچا (دنیکو عملونو) تله سپکه شی | نو دغه خلقو په خپله

| | | | |
|---|---|---|---|
| خَسِرُوٓا | أَنفُسَهُم | بِمَا | كَانُوا بِـَٔايَٰتِنَا |
| چې په نقصان کښې نې اچولی دی | خانونه خپل | په سبب دهغې | چې وو هغوئ | چې په آیتونو زمونږ به نې |

خپل خانونه په تاوان کښې اچولی وو | څکه چې زمونږ آیتونو سره نې

| |
|---|
| يَظْلِمُونَ۞ |
| ظلم کولو |

زیاتې کړې وو (چه دروغ نې ورته وئیل)

**قوله تعالی: إِلَّآ أَن قَالُوٓا إِنَّا كُنَّا ظَٰلِمِينَ۞**

**دظالمانو پخپل ظلم باندې اعتراف اودهغوی تباهی:-** څومره کلی مونږ درسول ﷺ په مخالفت باندې هلاك کړی دی. د دنیا او آخرت رسوائی مو هغوی پسې شاته لګولې ده. لکه چه فرمائی تانه وړاندې رسولانو سره ټوقې مسخرې شوی دی اودا خنداګانې کونکی هغې په سزاکښې هلاك کړې شوی دی لکه چه فرمائی چه مونږ ډیر زیات کلی دهغوی د ګناهونو په سبب هلاك کړل. چه کله هلاك کړې شو نود هغوی لوئ لوئ محلونه اوقلعه ګانې ورانې او پریوتلې پرتې دی دهغوی چینې اونهرونه مات ګډوډ پراته دی. اوفرمائی هغوی د خپل معیشت په فراخئ باندې ناز اوکړو نو مونږ هغوی هلاك کړل د هغوی کورونه داسې شولکه چه په هغې کښې هډو څوك اوسیدلې نه وو مګر لږ شان خلق بچ شو. اوس د هغې وارثان هم مونږ یو. اوفرمائی چه زمونږ عذاب هغوی له د شپې په اودو راغلو اویادغرمې د آرام په وخت کښې ناڅاپې. اودا دواړه وختونه د غفلت دی لکه چه فرمائی دې خلقوته ددې ویره نشته چه زمونږ عذاب به دوی د شپې په اودو راګیرکړی یا به سحر وختی راشی اوهغوی په خپلو فضول کارونوکښې اخته وی اودا پخپلو ګناهونو باندې ځل ول کونکی ددې خبرې نه نه ویریږی چه الله ﷻ به هغوی په زمکه کښې ورخښ کړی یاداسې ناڅاپی عذاب راتلې شی چه دهغوی په وهم اوګمان کښې به هم نه وی. یا به هغوی د سفر په وخت کښې راګیرکړی اوهغوی به د دې څه علاج نه شی کولې. اوفرمائی چه کله عذاب په هغوی باندې راشی نود دې وینا نه بغیر به ترې نور څه جوړنه شی چه قصور او خطا هم زمونږ وه.

**هرقوم د واضح دلیل نه پس هلاک شوی دي** -لکه چه فرمائی داسې ډیرکلی چه دحد نه نی تجاوز

کړي وو مونږ برباد کړی دی.داپورتني ایت د نبی کریم ﷺ د دې حدیث واضح دلیل دی چه یو قوم هم نه دی هلاك شوی ترکومې چه د هغوی ټول عذرونه ختم کړی شوی نه دی.عبدالملك رحمه الله نه تپوس اوکړی شو چه دا به څنګه وی نو هم دا آیات ئی لوستلې وو چه کله زمونږ عذاب راورسیدونو هم دائی ونیل چه زیاتی هم زمونږ د طرف نه وو. اوفرمائی چه چاته نبی لیږلی شوې دې د هغوی نه به خامخاتپوس کیږی. لکه چه فرمائی هغوی نه به تپوس کیږی چه رسولانوته تاسو څه جواب ورکړې وو کله چه هغوی د تبلیغ خپله فریضه ادا کړې وه. فرمائی چه په هغه ورځ به الله ﷻ رسولان راجمع کړی اوتپوس به ترې اوکړی چه ستاسوقوم تاسوته څه جواب درکړې وو؟ هغوی به وائی چه مونږ ته علم نشته ته دغیبوخبرو پیژندونکې ئی.اوس به الله ﷻ د قیامت په ورځ د هغه خلقونه تپوس اوکړی چه تاسو رسولانوته څه جواب ورکړې وو.نو فرمائی چه مونږ به داسوال درسولانونه هم کوو اودهغوی د قومونونه هم. حضور ﷺ فرمائیلی دی چه تاسو خلق ذمه وار افسران تاسو ټولونه به د خپلو خپلو ماتحتانو او لاندې خلقو باره کښې تپوس کیږی. د بادشاه نه به د قوم باره کښې تپوس کیږی دسړی نه به دښځې اود بچو په باره کښې تپوس کیږی اود نوکر نه به د هغه د مالك د مال تپوس کیږی.([1]) اوفرمائی چه مونږ به په یقین سره هغه هر څه اوښایو نو مونږ خو بې خبره نه یو.د قیامت په ورځ به دهغوی عمل نامه کولاوولې شی اود هغوی داعمالو تول او لټون به کیږی. الله ﷻ هرڅیز ته ګوری اوهغه خو دغلا په نظر اچولو باندې هم خبردار دې او د زړونو راز پیژنی. که پاڼړه راپریوځی یا په تیاره کښې یوه دانه پرته وی نوهغه ته علم دې په کتاب مبین کښې څه نشته اوچه او لمده هرڅه شته

قوله تعالی:: وَالْوَزْنُ يَوْمَئِذٍ الْحَقُّ ۚ

**قیامت په ورځ د عدل تله**:-ارشاددې اعمال دقیامت په ورځ تول کول حق دی دې دپاره چه په چا باندې ظلم اونه شی. لکه چه فرمائی مونږ به د قیامت په ورځ د انصاف تله اودرو دې دپاره چه په چا باندې ظلم اونه شي. که د اوری د دانې هومره عمل هم وی نو پاتې کیږی به نه اود شمیر دپاره هغه کافی وی اوفرمائی الله ﷻ یوه ذره هم په چا باندې ظلم نه کوی.که یوه نیکی وی نو هغه دوچنده درې چنده کولې شی.دا اجرعظیم د هغه د طرف نه د انعام په توګه دې([2]) فرمائی چه په تول کښې خوك دروند شو هغه په مزوکښې شو اوچه څوك سپك شو هغه دوزخ ته پریوتلو. پوهیږې چه هاویه څه څیز دې؟ سورکړی شوې اور دې. اوفرمائی چه کله شپیلئی پوکوهلې شی نو ټولې رشتې او خپلولئی به ختمې شی اونه به څوك د چا تپوس کوی.د چا وزن چه دروندشو هغه کامیاب شو اودچا چه سپك شوهغه به لویه خساره کښې پریوتلو اوجهنم د همیشه دپاره د هغه ځائ شو.

**وزن کولو نه څه مراد دې؟**:: په تله کښې چه کوم څیز تللې شی بعضو ونیلی هغه به نفس اعمال وی. یعنی هغه غیرمادی څیز دې خو الله ﷻ به هغې نه بدن ورکړی. هم د دې مضمون حدیث د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه سورة بقره او سورة آل عمران به د قیامت په ورځ د اوریځو په شکل کښې مخامخ راشي یا د دوو خیمویاپه آسمان باندې د خوروو شوو مرغو دسیل په شکل کښې به وی([3])او په صحیح حدیث کښې دی چه قرآن لوستونکی سره به قرآن پاك د یو ښکلی شکل د خوان په شان راځی. قاری به تپوس کوی ته څوك ئی؟هغه به وائی زه قرآن پاك یم ټوله شپه به مې ته راویښولې او ټوله ورځ د حکم په پوره کولو، په روژه کښې تږې اوساتلې.([4]) ځینې وائی چې دا قصه د قبر د سوال جواب باره کښې

---

[1] صحیح بخاری کتاب الجمعه باب الجمعه فی القری والمدن:۸۹۳، صحیح مسلم:۱۸۲۹، ابوداؤد:۲۹۲۸، ترمذی:۱۷۰۵

[2] ٤/النساء: ٤۰.

[3] صحیح مسلم کتاب الصلوه المسافرین باب فضل قراءه القرآن وسوره البقره: ۸۰۵، مصنیف عبدالرزاق: ۵۹۹۱،

[4] ابن ماجه کتاب الادب باب ثواب القرآن :۳۷۸۱، وسنده حسن،فضائل القرآن لابی عبیدبن سلام، ص ۳۶، احمد:۳۴۸/۵.

ده چه مړ من له به په قبر کښې یو ښکلي شکل والا ځوان سره دخوشبو راشي. دقبرخاوندبه تپوس اوکړي ته څوك ئي؟هغه به وائي زه ستا نیك عمل یم.(۱) حدیث بطاقه کښې دی چه یو سړی ته به د کاغذ یوه ټکړه ورکولې شي اوهغه به د تلې په یو چابړی کښې کیخودې شي او په بل چابړی کښې به یو کم سل کاغذونو ډیرې کیخودې شي. هریو به دومره لوئ وی ترکوم ځایه پورې چه نظر کارکوي. په دې بطاقه (کاغذ) باندې به لیکلې وی ﴿لااله الاالله﴾ هغه به وائی چه چرته دا یو کاغذ او چرته دا لوئ لوئ دفترونه نو الله ﷻ به فرمائی چه تاسره به ظلم نه شي کولې.رسول الله ﷺ فرمائی چه هغه د گناهونو ډیرو دفترونه به په تله کښې سپك شي او هغه د کاغذ وړه غونډې ټکړه به وزنی شي. (۲) اودا هم ونیلې شوی دی چه عمل یا عمل نامه به نه شي تللې بلکه عمل کونکې به تللې شي. لکه څنګه چه په حدیث شریف کښې دی چه د قیامت په ورځ به یو چاق سړې راوستلې شي خو هغه به د الله ﷻ په نیز د یوې بنړې برابر وزن هم نه لری. بیائی دا آیت تلاوت اوفرمائیلو ﴿فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَزْنًا﴾ (۳) دعبدالله بن مسعود ؓ نه روایت دې چه حضور ﷺ د حضرت عبدالله بن مسعود ؓ صفت کولو سره اوفرمائیل چه ستا د ابن مسعود(ؓ) په نرو نرو پښو باندې ولې تعجب کیږی په الله ﷻ قسم چه دا کله په میزان کښې تللې کیږی نود ده دا نرئی پښې به د احد د غر نه زیات وزنی ثابتیږی(۴) دا دریواړه روایتونه داسې راجمع کولې شي چه کله اعمال تللې شي اوکه عمل نامې او کله عمل کونکې.

| فِي الْأَرْضِ | مَكَّنّٰكُمْ | وَلَقَدْ |
|---|---|---|
| په زمکه کښې | ځائې اوقدرت درکړومونږ تاسوته | اوخامخاپه تحقیق سره |
| | اومونږ تاسود زمکې په مخ آبادکړی یې | |

| تَشْكُرُونَ | مَا | قَلِيلًا | مَعَايِشَ | فِيهَا | لَكُمْ | وَجَعَلْنَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې تاسو شکر اوباسئ | هغه | ډیرکم دې | سامان دژوند | په هغې کښې | ستاسو دپاره | اوپیداکړومونږ |
| اوتاسوته موهم په زمکه کښې دژوند ضروریات پیدا کړی دی خوتاسو ډیرکم دالله شکراوباسئ | | | | | | |

**قوله تعالی:: وَلَقَدْ مَكَّنّٰكُمْ**

**دخالق په مخلوق باندې احسانونه:-** الله ﷻ په بندیگانوباندې دخپلو احسانونوذکر فرمائی چه مونږ دومره تسلط ورکړو چه په دنیاکښې تاسو حکومت کولو اوپه زمکه باندې موخپلې جرړې مضبوطې کړې، خپل نهرونه مو جاری کړل، خپل کورونه اوښکلې محلونه مو جوړکړل او ټول د ګټې ورکولو څیزونه مو د ځان د پاره پیداکړل. مونږ دهغوی د پاره اوریځې مسخر کړې چه اوبه راوروړلوسره د زمکې نه د خپل ځان د پاره رزق پیداکړی او په زمکه کښې د هغوی د پاره دمعاش ذرائع حاصلې شی په کومو کښې چه دوی تجارت اوکړی اود خپل آرام دپاره قسم قسم اسباب راپیدا کړی.بیا هم دوی ددې ټولو نعمتونو شکریه نه اداکوی.

**د لفظ مَعَايِشَ تحقیق:-** لکه چه فرمائی که ته د الله ﷻ نعمتونه شمیرل غواړی نونه شې شمیرلې. انسان

---

(۱) احمد: ۲۸۷/۴-۲۸۸ وهوحدیث صحیح، الترغیب والترهیب: ۵۲۲۱.
(۲) ترمذی کتاب الایمان باب ماجاء فیمن یموت وهویشهد ان لااله الا الله: ۲۶۳۹، وسنده صحیح، ابن ماجه: ۴۳۰۰، احمد:۲۱۳/۲، حاکم: ۶/۱ ابن حبان: ۲۲۵.
(۳) صحیح بخاری کتاب التفسیر سوره الکهف باب ﴿أولئک الذین کفروا بربهم ولقائه فحبطت أعمالهم﴾: ۴۷۲۹.
(۴) احمد:۴۲۰/۱-۴۲۱، وسند حسن، مسندالطیالسی: ۲۵۶۱، مسندابی یعلی: ۵۳۱۰، مجمع الزوائد:۲۸۹/۹.

ډیر ظالم او ناشکره دي (۱) لفظ ﴿مَعَايِش﴾ ټول خلق په "ی" سره لولي يعني د همزه سره ﴿مَعَائِش﴾ نه لولي لیکن عبدالرحمن بن هرمز رحمه الله دا په همزه سره لولي. صحیح خو دا دی کوم چه د اکثروخیال دی یعني بغیرد همزه نه ځکه چه معايش جمع د ﴿معيشة﴾ده. دامصدر دې اوودې افعال ﴿عاش،يعيش﴾ ﴿معيشة﴾ د دې مصدر اصل دې. ﴿معيشة﴾ کسره "ی" باندې ثقيل وه په دې وجه د عين طرف ته منتقل کړې شو؛ ﴿مَعِيْشَةٌ مَعِيْشَةٌ﴾ جوړشو. بيا چه کله د دې واحد جمع جوړه کړې شوه نو "ی" طرف ته حرکت بيا راواپس شو ځکه چه اوس ثقالت باقي پاتې نه شو نو اوونيلې شو ﴿مَعَايِش﴾ وزن مفاعل دې د دې د پاره چه په دې لفظ کښې "ی" اصلي ده. پخلاف د مدائن او صحائف اوبصائر چه دا دمدينه صحيفه اوبصيرة جمع ده د دې دپاره چه "ی" په دې کښې زائده ده نو جمع به په وزن د فعائل وی او همزه به هم راځي. والله اعلم.

| وَلَقَدْ | خَلَقْنٰكُمْ | ثُمَّ | صَوَّرْنٰكُمْ | ثُمَّ | قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ |
|---|---|---|---|---|---|
| او خامخا په تحقيق | پيدا کړئ مونږه تاسو | بيا | شکل جوړ کړو مونږه ستاسو | بيا | اوونيل مونږه فرښتو ته |
| او مونږ تاسو پيدا کړئ (ستاسو پلار) | | اوبيا مو تاسو ته (هغه ته) صورتونه درکړو | | بيامونږ فرښتو ته اوونيل چې | |

| اسْجُدُوْا | لِاٰدَمَ | فَسَجَدُوْٓا | اِلَّآ | اِبْلِيْسَ | لَمْ يَكُنْ |
|---|---|---|---|---|---|
| سجده اوکړئ | ادم ته | نو سجده اوکړه هغوئ | مګر اونه کړه | ابليس | نه شو |
| ادم علیه السلام ته سجده اوکړئ | | نو د شيطان نه بغير ټولو فرشتو سجده اوکړه | | او شيطان په سجده کونک کښې | |

| مِّنَ السّٰجِدِيْنَ |
|---|
| د سجده کونکو نه |
| شامل نشو |

**قوله تعالى: وَلَقَدْ خَلَقْنٰكُمْ**

**د آدم علیه السلام پيدائش اوفضيلت:-** الله تعالی په دې مقام باندې د ابوالبشر حضرت آدم علیه السلام فضيلت اودهغه د دښمن ابليس ذکر فرماني دچا چه د آدم علیه السلام اود هغه اولاد سره بغض دې. ددې دپاره چه خلق د دې دښمن ابليس نه بچ لاړ شي اود ده په لار نه ځي. نوفرمائي چه مونږ تاسو پيداکړني ستاسو شکلونه مو جوړ کړل. بيا مونږ ملائکوته اوونيل چه آدم علیه السلام ته سجده اوکړني، ټولو سجده اوکړه. الله تعالی ملائکوته ونيلي وو چه زه يو بشر پيدا کونکې يم څوك چه به د کړنګيدلې اوچې خاورې نه جوړوم.

**د سجدې د امرکولو حکمت** کله چه مادهغه د تيارولونه پس په هغه کښې خپل روح پوکوهلواوبيا ژوندې بدن ترينه جوړشو نو زما دې قدرت ته په کتلو سره ټولو آدم علیه السلام ته سجده اوکړه (۲) اود دې ضرورت په دې وجه ووچه کله الله تعالی حضرت آدم علیه السلام د ليسداري مټينې ختې نه په خپل لاس جوړکړو اوهغه ته ني د يو پوره بشر شکل ورکړو او په هغه کښې ني خپل روح ورپوك کړو نو ملائکوته ني حکم اوکړو چه د چا د لاس جوړشوی مخلوق ته نه بلکه زما د خپل لاس جوړشوی صورت ته سجده اوکړني په اصل کښې داد الله تعالی قدرت ته سجده کول وو اود هغه د شان تعظيم کول وو نو ټولو فرښتو د حکم په منلوکښې سجده اوکړه خو ابليس اونه کړه. د سورة بقرې په اول کښې د دې په تفسيرباندې پوره بحث شوې دې اوس دلته چه مونږ کوم تقرير کړي دې هغه د ابن جرير رحمه الله اختيارکړې شوې دې ﴿خَلَقْنٰكُمْ ثُمَّ صَوَّرْنٰكُمْ﴾ په تفسيرکښې ابن عباس رضي الله عنه وائي چه انسانان دسړو په شاګانوکښې دننه پيدا کړې

(۱) ۱٤/ابراهيم: ۳٤.

(۲) ۱۵/الحجر: ۲۸-۲۹.

شوي دی دې نه پس د بنځو په رحمونوکښې د هغوی شکلونه جوړيږي. (¹) قتاده رحمه الله او ضحاک رحمه الله ددې آيت په تفسيرکښې وائی چه مونږ آدم پيداکړو بيا مود ده د اولاد تشکيل اوکړو خو په دې کښې د غورکولومقام دې خکه چه دې نه پس فرمائی چه ﴿قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ﴾نوداخيز په دې خبره دلالت کوی چه دې نه مراد آدم عليه السلام دې او دلته چه کوم په جمع سره ونيلې شوی دی د دې وجه دا ده چه آدم عليه السلام ابوالبشر دې لکه چه الله تعالیٰ خطاب فرمائی د نبی( د زمانې بنی اسرائيلو ته يعنی﴿ وَظَلَّلْنَا عَلَيْكُمُ الْغَمَامَ وَاَنْزَلْنَا عَلَيْكُمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوٰى ؕ كُلُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ ؕ وَمَا ظَلَمُوْنَا وَلٰكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ﴾ يعنی وريخ. مړزان او ترنجبين خو د موجوده بني اسرائيلو په پلارانونيکونو باندې راغلي وو خو مراد هم هغه خلق دی کوم چه د موسی عليه السلام په زمانه کښې وو خو په پلارانو نيکونو باندې احسان کول هم په اصل کښې د هغوی په نسل باندې احسان کول دی. نو لکه چه دا احسان په اولاد باندې هم شوې وو نو دغه شان خطاب خو کم دلته اوشو نو آدم عليه السلام او د هغه اولاد ټول مراد دی. يعنی ټول ئې جمع کړل په خلاف د الله تعالیٰ د دې قول چه ﴿وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ مِنْ سُلٰلَةٍ مِّنْ طِيْنٍ﴾ دلته د لفظ انسان نه جنس انسان مراد نه دې يعنی جمع مراد نه ده بلکه يو نفس يعنی دآدم عليه السلام ذات مراد دې چه د خاورې نه جوړشوې وو. خود هغه ټول اولاد د خاورې نه نه بلکه د نطفې نه جوړ دې. اوس انسان ته د خاورو نه جوړشوې په دې وجه وائی چه د هغوی پلار آدم عليه السلام د انسان په شان د نطفې نه نه بلکه د خاورې نه جوړ شوې وو. والله اعلم.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | مَا | مَنَعَكَ | اَلَّا تَسْجُدَ | اِذْ | |
| اوونيل الله | څه خيز | منع کړې ته | چې اودنه کړه سجده | کله چې | |
| ... الله تعالیٰ ترې تپوس اوکړو چې څه خيز ته دسجدې کولو نه منع کړې | | | | څه وخت چې | |
| اَمَرْتُكَ ؕ | قَالَ | اَنَا خَيْرٌ | مِّنْهُ ۚ | خَلَقْتَنِىْ | مِنْ نَّارٍ |
| حکم اوکړوماتاته | اوونيل شيطان | زه بهتر يم | دهغه نه | پيدا کړې يم تا زه | داور نه |
| ماتاته حکم اوکړو | شيطان اوونيل چې زه دده نه بهتر يم | زه دې د اور نه پيدا کړې يم | | | |
| وَّخَلَقْتَهٗ | مِنْ طِيْنٍ﴿۱۲﴾ | | | | |
| اوپيدا کړې دې تاهغه | دختې نه | | | | |
| اودې (آدم) دې د خاورې نه پيدا کړې دې | | | | | |

**قوله تعالی: قَالَ اَنَا خَيْرٌ مِّنْهُ ۚ**

**د ابلس فاسد قياس:**-دبعضو نحويانو په قول دا آيت ﴿مَا مَنَعَكَ اَلَّا تَسْجُدَ اِذْ اَمَرْتُكَ ؕ﴾کښې ﴿لا﴾زائددې او تاکيد د انکار په توګه زيات کړې شوې دې لکه چه شاعر ونيلی دی ﴿ماان رائيت ولاسمعت عثله﴾ په دې مصرع کښې "ان د نفی د پاره دې.کوم چه ﴿ما﴾ نافيه باندې تاکيدد نفی.دپاره راوړلې شوې دې لکه دلته ﴿ان﴾زيات دې. دغه شان په دې آيت کښې ﴿لا﴾ زيات دې.﴿ لَمْ يَكُنْ مِّنَ السّٰجِدِيْنَ﴾دا قول د الله تعالیٰ دې نه اول راغلې دې. د ابن جرير رحمه الله دا قول دې چه ﴿منعك﴾يو بل فعل ته متضمن دې دکوم تقدير چه به داسې وی چه کومې خبرې ته د دې د پاره مجبورکړې وې چه سجده مه کوه سره د دې چه زما حکم موجود وو اودا قول قوی او احسن دې. والله اعلم.

**فائده : د ابن کثير تسامح:**- دلته د ابن کثير رحمه الله نه څه تسامح شوې دې چه ﴿لا﴾ د نورو بعضو خلقو

¹) حاکم: ۳۱۹/۲.

په شان زائده ګڼړي یا دا چه یو بل فعل د دې نه وړاندې مقدر مني. یعنې(مااحوجك)یا(ماالزمك) یا (مااضطرك) څکه (تسجد) باندې (لا) راوړلو د پاره رابنکل او تاویل کولو سره څنګه صحیح ثابت کړی شي. حالانکه (لا) نه زائد د منلو ضرورت شته اونه د دې نه وړاندې د یو فعل (اضطرك)وغیره نه د محذوف ویستل ضروري دي. بلکه په اصل(منع)کنبې تجرید واقع شوې دې. یعنې(منع) په معنی د (قال)دې څکه چه روستو د راوړلو انکار دا راځي چه (منع) کنبې انکاریت باقي ساتلو ضرورت پاتې نه شو اودې نه د انکار معنی تجرید کولو سره صرف د قول په معنی کنبې باقي اوساتلې شو. نو معنی دا شوه چه کوم څیز تاته ویلي وو چه سجده مه کوه. د تجرید دا سیده ساده لار کومه چه د قانون نحو عین مطابق ده اوکومه چه د ضرورت په وخت کنبې اکثر اختیارولې کیږي اختیارولې شي نو دواړه؛ تکلف نه ډکې خبرې منل غیر ضروري کیږي. یعنې د (لا) زیاتي سره یاجمله صحیح کولو د پاره فعل مقدر(اضطرك) منل.

**د ابلس فاسد قیاس**:-ابلیس ونیلي وو چه زه د ده نه بهتر یم او په غوره سجده نه شي کولې د مفضول د پاره. یعنې زه د ده نه بهتر یم نوده ته د سجدې ماته ولې حکم کیږي. هغه دا دلیل پیش کوي چه زه د اور نه پیدا کړې شوې یم او اور د خاورې نه غوره دې کوم نه چه آدم ﷺ پیدا شوې دې. د ابلیس نظر په اصل عنصر دې خو هغه د آدم ﷺ په دې عزت ورکولو باندې نظر وانه چولو چه هغه د اللهﷻ په لاس جوړشوې دې. په ده کنبې د اللهﷻ روح اچولي شوې دې. هغه یو فاسد قیاس قائم کړو چه د نص په مقابله کنبې عارض کیږي. یعنې قیاس د اللهﷻ د حکم په وړاندې نه چلیږي غرض داچه ټولې فرښتې په سجده کنبې پریوتلې. ابلیس د سجدې په ترک کولو سره د ملائکونه جدا کړې شو اود اللهﷻ د رحمت نه ناامیده جوړشو.هم دغه ناامیدی په اصل کنبې د هغه خطا ده اویه قیاس کنبې نی هم غلطي اوکړه.دهغه دعوی دا وه چه اورد خاورې نه عزت مند دې خود خاورې شان تحمل حلم بردباري مستقل مزاجي ثابت قدمي ده.هم دا رنګه طین (خاوره) محل دنبات او نمود دې اود ناریعنې اور شان سوزول، سختي اوتیزی ده په دې وجه دابلیس عنصر هغه سره خیانت اوکړو اود آدم ﷺ عنصر رجوع انابت استکانه عاجزی او انقیاد کولو سره آدم ﷺ ته فائده ورکړه. د حضرت عائشه رضی الله عنها نه روایت دې چه حضورﷺ فرمائي چه ملائکې د نورنه پیداکړې شوی دی اوابلیس د اورد شغلې نه او آدم ﷺ د خاورې نه ([1])اوحورې د زعفران نه([2]) ابلیس قیاس قائم کړو اود ټولونه رومبې قیاس قائمونکې هم هغه دې او د شمس او قمر یعنې نمر سپوږمئ عبادت هم د دغه قیاس په بناء باندې کولې شي.([3])

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قَالَ | فَاهْبِطْ | مِنْهَا | فَمَا يَكُوْنُ | لَكَ |
| اوونیل الله | کوزشه | ددې ځاني نه | پس نه کیږي | تالره |
| | | | | |

الله ﷻ ورته اوونیل چې ښه نو ددې ځائې نه کوزشه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَنْ تَتَكَبَّرَ | فِيْهَا | فَاخْرُجْ | اِنَّكَ | مِنَ الصّٰغِرِيْنَ۝ | قَالَ |
| چې تکبراوکړې ته | په دې کنبې | نواوزه | ابیشکه چې ته | دذلیلانونه ئې | اوونیل شیطان |

تا سره تکبرنه ښائي | ددې ځائې نه بهرشه | ته دسپکوخلقو نه ئې | ......... شیطان اوونیل

[1] صحیح مسلم کتاب الزهد باب فی احادیث امتفرقه:۲۹۹۶، احمد:۱۵۳/۶، ابن حبان: ۶۱۵۵، الاسماء والصفات: ۱۲۶/۲.
[2] تاریخ بغداد:۹۹/۷ صفه الجنه لابی نعیم:۷۱/۲.
[3] الطبری:۳۳۲/۱۲.

| | | | |
|---|---|---|---|
| اَنۡظِرۡنِیۡۤ | اِلٰی یَوۡمِ | یُبۡعَثُوۡنَ ۝ | قَالَ |
| مهلت راکړه ماله \| دهغه ورځې پورې \| چې خلق به پکښې راپورته کړې کیږي \| اووئیل الله | | | |
| چې ته ماته دهغه وخت پورې مهلت راکړه \| چې دوئ به (دمرگ نه پس) بیاژوندی کیږي \| الله ﷻ اووئیل | | | |
| اِنَّکَ | مِنَ الۡمُنۡظَرِیۡنَ ۝ | | |
| بیشکه ته \| دمهلت ورکړې شوونه ئې \| | | | |
| چې تاته مهلت دې | | | |

**قوله تعالی: اِنَّكَ مِنَ الۡمُنۡظَرِیۡنَ ۝**

**ابلیس ته د قیامت پورې مهلت:**- الله ﷻ ابلیس ته خطاب فرمائی د یوداسې امر متعلق چه خامخا به واقع کیږي. زما د حکم نه نافرمانی او اطاعت نه بهر کیدلو په سبب ته د دې ځائ نه اوځه تاته د تکبر کولو هیڅ حق نه وو. اکثر مفسرین د منها ضمیر د جنت طرف ته عائدکوی اودا هم احتمال دې چه د دې رتبې او منزلت طرف ته عائد وی کوم چه هغه ته په ملائکوکښې حاصل وو.فرمائی ته اوځه ته ذلیل او حقیر ئې.دا د ابلیس د ضد نتیجه وه. په دې موقع ابلیس د یوې خبرې سوچ اوکړو اود الله ﷻ نه ئې د قیامت پورې مهلت اوغوښتلو اوداسې ئې عرض اوکړو ای الله ﷻ ماته په سزا راکولو کښې د ورځې د قیامت پورې مهلت راکړه الله ﷻ اوفرمائیل خه تاته مهلت درکړې شو په دې کښې هم د الله ﷻ حکمت پټ وو اوهم د هغه ارادې کارکولو د هغه د رضا مخالفت نه شی کولې دهغه د حکم نه پس د چا حکم نشته هغه زر حساب کونکې دې.

| | | |
|---|---|---|
| اَغۡوَیۡتَنِیۡ | فَبِمَاۤ | قَالَ |
| \| اوونیل شیطان \|نوپه سبب دهغې\|چې گمراه کړوتامالره | | |
| \| .... شیطان اوونیل په کومه وجه چه تا زه گمراه کړم (چه ادم دې) | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَاٰتِیَنَّهُمۡ | ثُمَّ | الۡمُسۡتَقِیۡمَ ۝ | صِرَاطَكَ | لَهُمۡ | لَاَقۡعُدَنَّ |
| خامخا به کینم زه \| دوئ ته \| په لارستا کښې \| چې نیغه ده \| بیا \| به خامخا راځم زه دوئ ته | | | | | |
| نوضرور زه به دوی (د ادم اولاد) ته ستا په نیغه لار کښې کینم \| بیا به ورته زه د هر طرف نه یعنی | | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| مِّنۡۢ بَیۡنِ اَیۡدِیۡهِمۡ | وَمِنۡ خَلۡفِهِمۡ | وَعَنۡ اَیۡمَانِهِمۡ | وَعَنۡ شَمَآئِلِهِمۡ ؕ |
| دمخې ددوئ نه \| اودروستو ددوئ نه \| اودښی طرف ددوئ نه \| اودگس طرف ددوئ نه | | | |
| د مخې طرفنه د شا طرفنه او دښی طرفنه او د گس طرفنه راځم \| (خوستا لارته به ئې نه پریږدم) | | | |

| | | |
|---|---|---|
| وَلَا تَجِدُ | اَکۡثَرَهُمۡ | شٰکِرِیۡنَ ۝ |
| اوته به اونه مومې \| زیات ددوئ \| شکرایستونکی \| | | |
| اوته به په دوئ کښې زیات ناشکره بیا مومې \| | | |

**قوله تعالی: لَاَقۡعُدَنَّ لَهُمۡ**

**د شیطان مکرونه:**-کله چه ابلیس ته د قیامت د ورځې پورې مهلت ملاوشو اوهغه داطمینان سا واخسته نو هغه دښمنی اوتمرد شروع کړو او وئی وئیل ای الله ﷻ ځنگه چه تا زه دربه درکړم زه به هم ستادبندیگانو په نیغه لارکښې کینم هغوی به هم اړوم. ابن عباس رضی الله عنه ﴿اغویتنی﴾ ترجمه ﴿اضللتنی﴾ کوی

او نور ﴿اهلكتني﴾ كوي.زه به د آدم ؑ بدله د آدم ؑ د اولاد نه اخلم. خكه چه زه د آدم ؑ په وجه ستا د دربارنه رټلې شوې يم.دصراط مستقيم نه حق لاراود خلاصي لارمراد ده.اوړيدل به داسې وي چه هغوی به ستا عبادت نه کوي ستا د توحيد نه به لرې وي او بعضو نحويانوونيلی دی چه ﴿فبما﴾ ب. دلته قسميه دی لکه چه داسې اووئيلې شو قسم دې ستا د اغوا چه په ما باندې صادره شوه. مجاهد رحمه الله د صراط نه مراد امر حق اخلي. اومحمد بن سوقه رحمه الله دمکې لار مراداخلي او ابن جرير رحمه الله ونيلی صحيح خبره خو دغه ده چه دا لفظ د دې ټولو معناګانونه عام تر دې. سبره بن ابی الفاکه رضی الله عنه نه روايت دې چه حضور ﷺ فرمائيل چه شيطان په مختلفو طريقو سره د بنيادم لار وهي هغه د اسلام په لار کيني او وائي چه ولې آيا ته به اسلام راوړې،دخپل پلارنيکه دين به پرېږدې؟خو هغه سړې دشيطان نافرماني کوي او اسلام راوړي،بيا هغه د هغه د هجرت په لارکښې کيني او وائي چه ولې ته به هجرت کوې آيا خپل وطن به پرېږدې؟ د مهاجرو عزت د خناور او اسونونه زيات نه وي، خو هغه نافرماني کوي او د هجرت لار اختياروي. بيا ني د جهاد د لارې نه د اړولو پاره په دې لارکښې کيني. جهاد په خان هم کيږي او په مال هم. نو ورته وائي چه څه له د جنګ د پاره څې ته به قتل کړې شې نو ستا ښځه به بل چا سره نکاح اوکړي ستا مال به خلق په خپل مينځ کښې تقسيم کړي خو بياهم هغه په جهاد کښې اوځي. حضور ﷺ فرمائي چه څوك داسې کوي او مرکيږي نو په الله ﷻ باندې واجب دې چه هغه له جنت ورکړي که هغه قتل شي يا په لارکښې ډوب شي يا په لارکښې هغه خناور اوخوري[1] بيا شيطان وائي چه زه به بنيادم ته د مخې نه هم راځم او د روستونه هم، يعنی د آخرت باره کښې به د هغوی په زړونوکښې شکونه پيداکړم. اود دنيا د خوښولو ترغيب به ورته هم ورکړم. اود ښي طرف نه به هم راځم يعنی د دين امر به هغه ته شك من کړم اود هغوی د ګس طرف نه به هم راځم يعنی ګناه به د هغه د پاره ښائسته او خوښه جوړه کړم.

**شيطان دهره طرفه راتلې شي نودبره نه نه :-** بيا مختلف خلق ددې مختلف معناګانې مراد اخلي چه تقريبًا نيزدې نيزدې دی. او شيطان دا نه دی ونيلی چه د پورته نه به راځم خکه چه د پورته نه خو صرف د الله ﷻ رحمت راتلې شي او اې الله ﷻ په دې بنديګانو کښې به ته اکثر شاکر يعني مؤحد اونه ګورې. دا خبره ابليس د خپل وهم او ګمان په وجه کړې وه ليکن د واقعې مطابق راغلو کيناستو لکه چه الله ﷻ فرمانيلی دی چه د ابليس دا ګمان صحيح ووخکه چه د مومنانونه سوا نورو ټولو دهغه ملګرتيااوکړه خو په مؤمنانوباندې دهغه داؤ اونه چليدو. مونږ په شيطان داسې کوشش خکه اوکړو چه دا ښکاره شي چه څوك په آخرت باندې يقين لرونکی دی او څوك په شك شبه کښې پريوتونکی دی او الله ﷻ خو د هر څيز پالونکې دې[2] د دې وجې نه په حديث کښې روايت دې چه په الله ﷻ د شيطان نه داسې پناه غواړه اې الله ﷻ! چه هغه په مونږ باندې د يو طرف نه هم مسلط نه شي.

**هروخت دعافيت دعاپکارده:-** لکه څنګه چه به نبی کريم ﷺ دعاغوښتله چه اې الله ﷻ زه تانه عفواو عافيت غواړم د دين د پاره هم اود دنيا د پاره هم اود اهل او مال د پاره هم. اې الله ﷻ زماګناهونه پټ کړه ماد ويرې نه په امن کښې اوساته اودمخې نه هم زما حفاظت اوکړه اود شانه هم،د ښي طرف نه هم اودګس طرف نه هم دبره نه هم اوزه پناه غواړم ددې نه چه شيطان دلاندې نه ماسره دهوکه اونه کړي[3]

---

[1]) نسائی کتاب الجهاد باب ولمن اسلم وهاجرو جاهد:۳۱۳۶، وسنده حسن، احمد:۴۸۳/۳، ابن حبان: ۴۵۹۳، شعب الايمان: ۴۲۴۶، التاريخ الکبير: ۸۷/۲، ابن ابی شيبه: ۲۹۳/۵، المعجم الکبير:۱۳۸/۷.

[2]) ۳۴/سبا:۲۰.

[3]) ابوداود کتاب الادب باب مايقول اذااصبح: ۵۰۷٤، وسنده صحيح، نسائی:۵۵۳۱، ابن ماجه:۳۸۷۱، احمد:۲۵/۲، الادب المفرد:۱۲۰۰.



| قَالَ | اخْرُجْ | مِنْهَا | مَذْءُوْمًا | مَّدْحُوْرًا ؕ | لَمَنْ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوونیل الله | اوزه | ددې جنت نه | ذلیله | رټلې شوې | اخامخاهغه څوک |
| الله ﷻ ورته اوونیل چې ددې جنت نه بهرشته تـه ذلیله او رټلې شوې نې | | | | | په دې یقین |
| تَبِعَكَ | مِنْهُمْ | لَاَمْلَئَنَّ | جَهَنَّمَ | مِنْكُمْ | اَجْمَعِيْنَ ۞ |
| چې پیروی نې اوکړه ستا | ددوئ نه | خامخابه ډك کړم زه دوزخ | | ستاسو نه | ټولو نه |
| اوساته چې په دوئ کښې څوک هم ستاپه لار روان شي نوضرور به ستاسو ټولونه دوزخ ډک کړم | | | | | |

**قوله تعالیٰ:: قَالَ اخْرُجْ مِنْهَا**

**ابلیس د الله ﷻ ددربارنه اوشړلې شو:-** الله ﷻ داوچت محل دملائکونه ابلیس راویستلو سره حکم ورکوی چه خوار ذلیل او شړلې شوې دې خائ نه اوځه. ابن جریر رحمه الله فرمانی چه "مذموم" په معنی معیب او ذلیل دې. د عیب په موقع د "ذم" لفظ استعمالولوسره د "ذیم" لفظ استعمالول ډیر بلیغ دی او د "مدحور" معنی لرې او شړلې شوې. مذوم اومذموم په اصل کښې هم یو دې او دا فرمان چه څوک ستا منل کوی زه په د داسې ټولوخلقو نه اوستا د ډلې نه دوزخ ډک کړم لکه چه فرمانی شیطان ته، اوځه چه څوک خلق ستا منل کوی دوزخ د هغوی پوره پوره بدله ده. په کومو کومو چه ته قدرت لرې ټولو ته آواز ورکړه راونی غواړه اود خپل لښکر او اولاد په ذریعه هغوی فتح کړه اود هغوی په مالونو او اولاد کښې شریك جوړ شه. او هغوی سره ښه ښه د دروغو وعدې اوکړه. د شیطان وعده خو صرف د دهوکې ورکولو دپاره وی خو زما په خاص بندیگانوباندې به ستا هیڅ کله هم قدرت اونه چلیږی رب به د هغوی وکالت او کفالت کوی.

| وَيٰۤاٰدَمُ | اسْكُنْ | اَنْتَ | وَزَوْجُكَ |
|---|---|---|---|
| اوا ے ادم ؑ | اوسه | ته | اوښځه ستا |
| اوائي ادم ؑ ته او ستا بی بی دواړه | | | |
| الْجَنَّةَ | فَكُلَا | مِنْ حَيْثُ شِئْتُمَا | وَلَا تَقْرَبَا |
| په جنت کښې | پس خورئ دواړه | د هرخائې نه چې غواړئ تاسو | اومه نزدې کیږئ دواړه |
| په جنت کښې اوسیږئ | نو کوم خائې نه چه مو خوښه شي دواړه خوراک کوئی (خو یاد ساتئ چه) | | |

| هٰذِهِ الشَّجَرَةَ | فَتَكُوْنَا | مِنَ الظّٰلِمِيْنَ ۞ | فَوَسْوَسَ | لَهُمَا |
|---|---|---|---|---|
| دې ونې ته | نوشئ به تاسوا | د ظالمانو نه | پس وسوسه اوکړه | هغوئ دواړو ته |
| دې (فلانۍ) ونې ته به نه نزدې کیږئ | گنې په ظالمانو کښې به شمیر شي | | نو دواړو ته شیطان | |
| الشَّيْطٰنُ | لِيُبْدِيَ لَهُمَا | مَا | وٗرِيَ | عَنْهُمَا |
| شیطان | دپاره ددې چې ښکاره کړي هغوئ دواړوته | هغه | چې پټ کړې شوی وو | اد هغوئ نه |
| وسوسه واچوله | چې دپردې هغه اندامونه ورته ښکاره کړي کوم چې ترې نه پټ وو | | | |
| مِنْ سَوْاٰتِهِمَا | وَقَالَ | مَا نَهٰكُمَا | رَبُّكُمَا | عَنْ هٰذِهِ الشَّجَرَةِ |
| یعنې دشرم خایونه ددواړو | اووې ونیل | نه یې منع کړي تاسو | ارب ستاسو | ددې ونې نه |
| او ورته ئې اوونیل چې تاسودواړه ددې ونې نه ستاسو رب صرف په دې وجه منع کړي وئي | | | | |

| اِلَّآ اَنْ | تَكُوْنَا | مَلَكَيْنِ | اَوْ تَكُوْنَا | مِنَ الْخٰلِدِيْنَ ۞ |
|---|---|---|---|---|
| مګر په دې وجه اچې هسې نه چرته شئ تاسوا | | فرښتې | يا شئ تاسو | دهميشه خلقو نه |

چې فرښتې نشئ ا يا هميشه دپاره (په جنت کښې) پاتې نشئ

| وَقَاسَمَهُمَآ | اِنِّيْ | لَكُمَا | لَمِنَ النّٰصِحِيْنَ ۞ |
|---|---|---|---|
| اوقسم ئې اوخوړو دواړوته | چې بيشکه زه | تاسو دواړو ته | دنصيحت کونکونه يم |

اودواړو ته ئې قسم اوکړوا چې زه يقيناً ستاسو خيرخواه يم

قوله تعالى: فَوَسْوَسَ لَهُمَا الشَّيْطٰنُ

**د ابليس مکارى او فريب:-** ارشاد دې چه د حضرت آدمؑ او حضرت حواء دپاره جنت د اوسيدو ځائ ګرخولې شوې وو او ورته وئيلې شوى وو چه د جنت ټولې ميوې خوړلې شنى سوا د يوې ونې نه. په دې باندې پوره بحث په سورۀ بقره کښې تيرشوې دې. په دې خبره اوريدو باندې د شيطان دې دواړو سره حسد شو اود دهوکې نه د کار اخستلو کوشش ئې اوکړو دې دپاره چه کوم نعمت او لباس د ښائست هغوى ته حاصل دې د هغې نه دوى محروم کړى. اوس ابليس حضرت آدمؑ او بى بى حواء ته اووئيل الله ﷻ چه دا تاسو د دې ونې نه منع کړى ئى هغه په دې مصلحت سره چه تاسو دواړه چرته فرښتې جوړې نه شئ اوهميشه دلته د اوسيدو حق حاصل نه کړئ. که تاسو د دې ونې ميوه اوخوړله نو تاسو ته به داحق حاصل شي لکه چه وائى اي آدمؑ زه تاته يوه ونه ښائم اود داسې ملکيت پته درکړم چه هيڅ کله نه ختميدونکې اونه فناکيدونکې وى. لکه چه فرمائى اللهﷻ تاسو ته په واضح توګه دا خبره په دې وجه ښائى دې د پاره چه ګمراه نه شئ.

**(ان تضلوا)** مطلب دې **(ان لاتضلوا)** او هغه په زمکه کښې د غرونو ميخونه ورخښ کړل دې د پاره چه نه خوزيږى او ټيټيږى. دلته د **(تميدبکم)** نه **(لاتميدبکم)** مراد دې. د ابن عباسؓ اويحيى بن ابى کثير **(ملکين)** ته **(ملکين)** کسرې سره لوستلو خو جمهور ئى د فتحې سره لولى.

**(وقاسمهما)** يعنى دهغوى په وړاندې ئى په اللهﷻ قسمونه اوخوړل چه زه ستاسوخيرخوايم.زه تاسو دواړو نه وړاندې دلته اوسيدم اود دې جنت د هر يو ځائ نه ښه خبردار يم **(قاسم)** د باب مفاعله نه دې په کوم کښې چه د شرکت خاصيت وى خوبعضې وخت هم يو مخ مرادوى يعنى آدمؑ اوابليس دواړو نه بلکه صرف ابليس قسم خوړلې وو ترديې چه په دهوکه ورکولو کښې کامياب شو. اود اللهﷻ نوم اخستو سره مؤمن دهوکه خوړلې شى. بعضې اهل علم وائى چه که مونږ ته چا د اللهﷻ نوم اخستلوسره دهوکه راکړه نو مونږ هميشه دهوکه خوړلې نو حضرت آدمؑ به څنګه دهوکه نه خوړله.

| فَدَلّٰهُمَا | بِغُرُوْرٍ | فَلَمَّا | ذَاقَا الشَّجَرَةَ | بَدَتْ | لَهُمَا |
|---|---|---|---|---|---|
| نولاندنې راويستل دواړه | په دوکه سره | نوهرکله چې | اوڅکله دواړوهغه ونه | ښکاره شوا | دواړوته |

نودواړه ئې په دهوکه راکوز کړل انوهرکله چې ئې د ونې ميوه اوڅکله انودواړو ته خپل خپل

| سَوْاٰتُهُمَا | وَطَفِقَا | يَخْصِفٰنِ | عَلَيْهِمَا | مِنْ وَّرَقِ |
|---|---|---|---|---|
| بدنونه ددواړوا | اوشروع اوکړه دواړوا | چې نښلولې ئې | په خپلو ځانونو | دپاڼړو |

بدنونه ښکاره شول او په خپلو خپلو شرمګاهونو باندې ئې د جنت (د وونو) پاڼړې لګول

الْجَنَّةِ ط | وَنَادٰىهُمَا | رَبُّهُمَآ | اَلَمْ اَنْهَكُمَا | عَنْ تِلْكُمَا الشَّجَرَةِ

دجنت نه | اواواز اوكړو دواړوته | رب ددواړو | آيا مانه وئ منع كړي تاسو دواړه | ددغې ونې نه

شروع كړل آو دغه وخت كښې ورته خپل رب اوونيل چي ولې ماتاسو ددې ونې نه منع كړي نه وې ؟

وَاَقُلْ | لَّكُمَآ | اِنَّ الشَّيْطٰنَ | لَكُمَا | عَدُوٌّ | مُّبِيْنٌ ۝

اونهٔ وو وئيلي ما | تاسو دواړو ته | چې بیشکه شیطان | ستاسو دواړه دپاره | دشمن دی | ښكاره

او تاسوته مې دا خبره نه وه كړې | چې شيطان ستاسو ښكاره دښمن دی

قَالَا | رَبَّنَا | ظَلَمْنَآ | اَنْفُسَنَا ٚ | وَاِنْ لَّمْ | تَغْفِرْ لَنَا

اوونيل دواړو | اے ربه زمونږه | ظلم اوكړو مونږه | په خانونوخپلو باندې | اوكه چرې | معاف نهٔ كړو تا مونږه

دواړو عرض اوكړو اني زمونږ ربه مونږ په خپلوخانونو باندې زياتي كړې دې اكه تا مونږ معاف نكړو

وَتَرْحَمْنَا | لَنَكُوْنَنَّ | مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ۝

اورحم داونهٔ كړو په مونږه | نو خامخا شو به مونږه | دنقصان موندونكونه |

اوپه مونږ دې رحم اونكړو | نو مونږ به ډير زيات تاوانيان شو

**قوله تعالى: قَالَا رَبَّنَا ظَلَمْنَآ اَنْفُسَنَا**

**دحضرت آدم ﷺ د الله ﷻ نه د رحم خواست:-** ابی بن کعب ﷺ وائی چه حضرت آدم ﷺ د خرما د ونې غونډې اوږد قدوالا وو. دسرويښته ئی ګڼر اواوږده وو. کله چه د هغوی ﷺ نه خطا اوشوه نود هغوی ﷺ پټ شوې بدن ښکاره شو اودې نه وړاندې ئی خپل پټ شوې بدن نه وو ليدلې. اوس ئی په وارخطائی سره جنت کښې يوخوابل خوا منډې وهلې. د جنت يوې ونې سره ئی ويښته اونختل نو ونې ونيل چه ما پرېږده. ونې ونيل چه زه به دې نه پرېږدم. رب عزوجل آواز اوکړو اې آدم ﷺ ته مانه تختې؟ حضرت آدم ﷺ اوونيل اې ربه! زه تانه حيا کوم ځکه چه زما بدن ښکاره شو (¹)حضرت ابن عباس ﷺ وائی چه هغه ونه کومې نه چه آدم ﷺ منع کړې شوې ووهغه د غنمو وګې وو کله چه حضرت آدم ﷺ او بی بی حوا دا اوخوړه نودهغوی پټ اندامونه هغوی ته ښکاره شو. اوس هغوی د ونوپه پاڼو اود انځر په پاڼو خپل بدنونه پټول او يوه پاڼه به ئی د بلې سره يوځائ کوله او بدن به ئی پرې پټولو. الله ﷻ اوفرمائيل اې آدم ﷺ ماتاته جنت درکړې وو او هريو څيز مې درته جائز کړې وو بغير د ونې نه کومې نه چه مې منع کړې وې.

**ادم عليه السلام دشيطان په قسم دهوکه شوې وو::** نو آدم ﷺ اوفرمائيل چه او خو اې ربه! دا ستا په عزت باندې قسم اوخوړلو زما په وهم او ګمان کښې هم دا خبره نه راتله چه ستا قسم خوړلو سره به دروغ وائی. لکه چه الله ﷻ فرمائی ﴿وَقَاسَمَهُمَآ اِنِّيْ لَكُمَا لَمِنَ النّٰصِحِيْنَ﴾ قسم ئی اوخوړلواو ورته ئی اوونيل چه زه ستاسود پاره خيرخوا يم. نو اوس الله ﷻ حضرت آدم ﷺ ته اوفرمائيل چه زما دې په خپل عزت باندې قسم وی چه زه به تا زمکې ته ليږم، تاته به دې ژوندکښې د محنت او خفګان نه بغير آرام نه شی ملاويدلې. بيائی اوفرمائيل چه د جنت نه لاندې کوز شه که تا په جنت کښې هرقسم نعمتونه خوړل نو اوس د طعام او شرابو غونډې ښکلې نعمتونه تاته نه شی ملاويدلې. الله ﷻ په دنياکښې حضرت آدم ﷺ ته د اوسپنې نه کار اخستل او زميندارى اوخودله. هغه زميندارى شروع کړه او پټی

¹ )الطبری: ۱۲/ ۳۵٤.

نی اوبه کول، فصل پوخ شو نو پرې نې کړو هغه نې اوټکولو او دانې نې ترې اوويستلې بيانې اوړه کړل او اوړه نې واغړل او روټئی نې پخه کړه او ونې خوړله او کوم تکليف چه د هغه په قسمت کښې ليکلې وو د الله ﷻ د رضالاندې ملاوشو. ابن عباس ؓ فرمائي چه حضرت آدم ؑ په جنت کښې د انځر پاڼې يوځاۍ کولې او د جامو په شکل کښې نې يوځاۍ ترلې. وهب بن منبه ؓ فرمائي چه د آدم ؑ او بی بی حوا لباس د نور وو چه يو بل به نې برېنډ نه شو ليدلې او چه کله برېنډ شو نو دې برېنډوالی د پټولو خيال قدرتي توګه باندې پيدا شو.

**ادم عليه السلام دغلطۍ نه پس توبه ويستله او ابليس مهلت طلب کړو::**-قتاده ؒ وائی چه آدم ؑ ونيلې وو اې ربه زه توبه او استغفار کولې شم؟نو الله ﷻ اوفرمائيل په دې صورت کښې به تا په جنت کښې داخل کړم. خو ابليس په ځاۍ د توبې د اجازت غوښتلو د مهلت سوال اوکړو. د الله ﷻ د طرف نه د يو د خوښې غوښتلې شوې ځيز ورکړې شو. د ابن عباس ؓ نه روايت دې چه کله آدم ؑ غنم اوخوړل نو الله ﷻ اوفرمائيل چه کله ته ما د دې ونې نه منع کړې وې نو تا ولې اوخوړله؟ نو ونې ونيل چه حوا ماته دا مشوره راکړې وه نو ونې فرمائيل چه زه حوا ته دا سزا ورکوم چه د حمل په زمانه کښې به هم دې ته تکليف وی او د وضع حمل يعنې ماشوم پيدا کيدو وخت کښې هم دې ته تکليف او درد وی. دې اوريدو سره بی بی حوا په ژړا شوه نو ونې فرمائيل چه د پيدا کيدو په وخت کښې به ته او ستا بچې دواړه ژاړنی.[1] آدم ؑ د الله ﷻ نه دا کلمې زده کړې وې.﴿ رَبَّنَا ظَلَمْنَآ اَنْفُسَنَا ۚ فَاِنْ لَّمْ تَغْفِرْ لَنَا وَتَرْحَمْنَا لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴾

| قَالَ | اهْبِطُوْا | بَعْضُكُمْ | لِبَعْضٍ | عَدُوٌّ | وَلَكُمْ | فِي الْاَرْضِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اووئيل الله | کوزشۍ | ځينې له تاسو | دپاره دځينو | دشمنان يئ | اودې ستاسو دپاره | په زمکه کښې |
| الله ﷻ ورته اووئيل چې ټول (د جنت نه) کوز شۍ | | تاسو به (په دنيا کښې)، دبوبل دښمنان يئ | | | اوتاسو به په زمکه باندې | |

| مُسْتَقَرٌّ | وَّمَتَاعٌ | اِلٰى حِيْنٍ | قَالَ | فِيْهَا |
|---|---|---|---|---|
| ځائې دقرار | اوسامان د ژوند | دخاصې مودې پورې | اووئيل الله | په دې زمکه کښې به |
| تريو وخت پورې ژوند تيروۍ | اوتريووخته پورې به (د دنيوی ژوند)، فائده اخلۍ | | الله ﷻ اووئيل چې | |

| تَحْيَوْنَ | وَفِيْهَا تَمُوْتُوْنَ | وَمِنْهَا | تُخْرَجُوْنَ |
|---|---|---|---|
| تاسو ژوند تيروۍ | اوهم په دې کښې به تاسو مرۍ | اوهم ددې نه به | تاسو راايستلې کيږۍ |
| په دې (زمکه) کښې ژوند تيروۍ | اوهم په دې کښې به مرۍ | اوبيا به هم ددې زمکې نه راويستې شۍ | |

**قوله تعالی:: قَالَ اهْبِطُوْا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ**

**آدم ؑ اوبی بی حو د عرش نه په فرش باندې** -:دا دجنت نه د لاندې کوزيدو خطاب آدم ؑ بی بی حوا او ابليس ته کيږی

**دمار وغيره قصې اسرائيليات دی:**-او بعضو په دې کښې مار هم شامل کړې دې ځکه چه مار د آدم ؑ او ابليس په مينځ کښې د دښمنئ سبب جوړ شوې وو. په دې وجه نې په سورت طه کښې فرمائيلی دی چه تاسو ټول په ټول کوز شئ بی بی حوا خو دآدم ؑ تابع وه او که مار هم شامل کړې شی نوهغه د ابليس تابع وو. مفسرينو د هغه مقاماتو ذکر هم کړې دې چرته چه دوی کښې هريو کس غورزولې شوې وو. دا ټولې خبرې د اسرائيلياتو نه اخستې شوی دی د دې د صحيح کيدو نه الله ﷻ

[1] حاکم: ٢/٣٨١.

خبر دي. که د دې مقاماتو په تعین کښې څه فائده وه نو الله ﷻ به هغه خامخا خودلې وو یا به چرته په حدیث کښې ذکر وو. ارشاد دې چه اوس به هم زمکه ستاسو د قرار ځای وي او تر مرګه پورې به هم په زمکه کښې نفع اخلی لکه چه فرمانی ﴿مِنۡهَا خَلَقۡنٰكُمۡ وَفِيۡهَا نُعِيۡدُكُمۡ وَمِنۡهَا نُخۡرِجُكُمۡ تَارَةً اُخۡرٰى﴾ الله ﷻ خبرورکوی چه زمکه مې د ټول عمر دپاره دآدم ؈ د بچو د پاره کور جوړ کړو.هم دلته نی ژوند تیرول دی اوهم دلته نی مره کړیدل دی هم دلته به قبرونه وی اود قیامت په ورځ به هم د دې ځای نه اوچتولې شنی او بیابه د خپل خپل عمل جزاء ورکونی.

| يٰبَنِيۡۤ | اٰدَمَ | قَدۡ | اَنۡزَلۡنَا | عَلَيۡكُمۡ | لِبَاسًا | يُّوَارِيۡ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اے اولاده | دادم | په تحقیق سره | نازلې کړی دی مونږه | په تاسو باندې | جامې | چې پټ کړی |
| انې دآدم اولاده مونږ تاسوته (قسم قسم) جامې درکړی دی \| چې ستاسو سترهم پټوی | | | | | | |
| سَوۡاٰتِكُمۡ | وَرِيۡشًا | وَلِبَاسُ التَّقۡوٰى | ذٰلِكَ | | | |
| دشرم ځایونه ستاسو | اوذریعه وی دښائیست اودحفاظت | اوجامه دتقوی چې ده | دغه | | | |
| ............ او ستاسوښائست هم دې\| اود پرهیزګارئ جامه د نورو جامونه | | | | | | |
| خَيۡرٌ | ذٰلِكَ | مِنۡ اٰيٰتِ اللّٰهِ | لَعَلَّهُمۡ | يَذَّكَّرُوۡنَ۝ | | |
| غوره ده | دا دی | دنښو دالله نه | ابنائیږی چې خلق | سبق واخلی | | |
| غوره ده \| دا دالله ﷻ ایاتونه دی چې دوئ ترې سبق زده کړی \| | | | | | | |

**قوله تعالی:: وَلِبَاسُ التَّقۡوٰى ذٰلِكَ خَيۡرٌ**

**د بدن لباس اودتقوی لباس:-** الله ﷻ په خپلو بندیګانوباندې د خپلو احسانونو ذکر کوی چه مونږ تاسو ته دښائست لباس درکړو. لباس د بدن اودستر پټولودپاره په کارراخی او"ریش"هغه لباس دې چه د حسن ښائست اوزینت دپاره اغوستې شی اولنې څیزخوبه ضروریاتوکښې داخل دې اوریش په تکمیلاتواوزیاداتو کښې شامل دی.ابن جریر رحمه الله وائی چه ریش دعربو په کلام کښې دکور سازوسامان اوضرورت نه زیاتو جامو یعنی لباس ته وائی.ابن عباس رضي الله عنه ددې معنی مال ښائی اوعیش اوعشرت ته وائی.

**د جامې اغوستلو دعااوشکر::**ابوامامه رضي الله عنه نوې جامې واغوستې اوچه کوم وخت نی ترمرئی پورې واغوستې نو وئی وئیل چه د الله ﷻ شکر دې چه ماته نی جامې واغوستې د کومو په ذریعه چه ما خپل بدن په ضروری توګه پټ کړو اودې سره خپل زینت هم کوم. حضور ﷺ فرمائیل چه چا کومه نوې جامه واغوسته اوتر مرئی پورې اغوستلو باندې نی دا اووئیل چه د الله ﷻ شکر دې چاچه ماته لباس واغوستولو په کوم چه زه خپل پټ اندامونه پټوم او زما په ژوندکښې هغه زما د ښائست او شان سبب دې او بیا ویستلې شوې کپړه چرته غریب ته ورکړی نو هغه د الله ﷻ په ذمه وارئی کښې راغلو په ژوند کښې هم او په مرګ باندې هم[1] حضرت علی رضي الله عنه د یو هلك نه په درې درهم باندې یوقمیص واخستلو اود پینځو نه نی ترګیټوپورې واغوستلو نوونی فرمائیل د الله ﷻ شکر دې چا چه په ریش سره ماته ښائست راکړو اودې سره زه خپل عورت پټوم. هغوی ته اووئیلې شو چه دا ته په خپله خوښه وائې یا دې د نبی کریم ﷺ نه اوریدلی؟ نو حضرت علی رضي الله عنه اوفرمائیل چه د نبی اکرم ﷺ نه مې اوریدلی وایم[2]

**دلِبَاسُ التَّقۡوٰى معنی ایمان وغیره::-**اود الله ﷻ ارشاد دې چه د تقوی لباس د ټولونه بهتر لباس دې. لباس

[1]) ترمذی کتاب الدعوات: ۳۵۶۰، ابن ماجه: ۳۵۵۷، حاکم: ۱۹۳/۴، احمد: ۴۴/۱.
[2]) احمد: ۱۵۷/۱، مسندابی یعلی: ۲۹۵، مجمع الزوائد: ۱۲۱/۵.

بعضو په نصب سره لوستلي دي او بعضو په رفعي سره په دې وجه دا مبتداء دې (ذلك خير) دا خبر دې. مفسرینو په دې کښې هم اختلاف کړې دې. عکرمه ﷺ فرمائي چه دې، نه هغه لباس مراد دې چه د قیامت په ورځ به متقیانوته اغوستې کیږي. ابن جریج ﷺ وائي چه د دې معني ایمان ده. عروه ﷺ د تقوی لباس معنی د الله ﷻ ویره ښائي. دا ټولې معني یوبل ته نزدې دی اود دې حدیث په تائید کښې دی چه عثمان بن عفان ﷺ د رسول الله ﷺ منبرته راغلو هغوی یو قمیص اغوستې وو د کوم بټنې چه کولاؤ وې. هغه د سپو د وژلو حکم ور کولو اود کونتر بازئی نه ئی منع فرمائیله او وئیلې چه اې خلقو! د پټ پټ کار کولو نه بچ شئی ځکه چه رسول الله ﷺ فرمائیلي چه په الله ﷻ قسم څوك چه د غلا کارکوی نو الله ﷻ به د هغه هغه د غلاکار ښکاره کړي نوکه هغه کار ښه وي نو نیك نامي او که بد وي نو بدنامی به وي بیا ئي هم دا پورتنې آیات تلاوت کړو.[1]

| |
|---|
| يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ |
| ا. اے اولاده \| دآدم |
| \| .............ائې د آدم اولاده! |
| لَا يَفۡتِنَنَّكُمُ ٱلشَّيۡطَٰنُ كَمَآ أَخۡرَجَ أَبَوَيۡكُم |
| په فتنه کښې وانچوی تاسو لره \| شیطان \| لکه څنګه چې \| ایستلي وو هغه \| مور او پلار ستاسو |
| هسې نه چې شیطان مو بیا په فتنه کښې واچوی \| لکه څنګه چې ئې ستاسو مور پلار د |
| مِّنَ ٱلۡجَنَّةِ يَنزِعُ عَنۡهُمَا لِبَاسَهُمَا لِيُرِيَهُمَا |
| د جنت نه \| چې ایستلي ئي وې \| دهغوئ دواړو نه \| جامې دهغوئ \| دپاره ددې چې اوښائي دواړو ته |
| جنت نه ویستلي وو \| په داسې حال کښې چې هغوئ نه ئې جامې ویستلي وې \| چې هغوی دواړو ته |
| سَوۡءَٰتِهِمَآۚ إِنَّهُۥ يَرَىٰكُمۡ هُوَ وَقَبِيلُهُۥ مِنۡ حَيۡثُ |
| دشرم ځایونه دهغوئ \| بیشکه هغه \| ویني تاسو لره \| هغه پخپله \| او ملګري دهغه \| دهغه ځائې نه |
| د هغوئ عورتونه اوښائي \| او دهغه قام قبیله تاسو دداسې ځائې نه ویني چې تاسو ئې |
| لَا تَرَوۡنَهُمۡۗ إِنَّا جَعَلۡنَا ٱلشَّيَٰطِينَ أَوۡلِيَآءَ لِلَّذِينَ |
| چې نه وینئ تاسو هغوئ لره \| بیشکه مونږه \| جوړ کړي دي شیطانان \| دوستان \| دپاره دهغه کسانو |
| نه شئ لیدلې \| مونږ شیطانان دهغه خلقو دوستان جوړ کړي دي چې هغوئ |
| لَا يُؤۡمِنُونَ ۝٢٧ |
| چې ایمان نه راوړی \| |
| ایمان نه راوړی \| |

قوله تعالی: يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ لَا يَفۡتِنَنَّكُمُ ٱلشَّيۡطَٰنُ

د آدم ﷺ اولاد ته خبرداري: الله ﷻ بنیادم د ابلیس او د هغه د اولاد نه ویروی او فرمائي چه ابو البشر آدم ﷺ سره دهغه زړه دښمنی ده چه دجنت نه ئي راؤویستلو او ددنیا تکلیفونو کښې ئې راګیر کړو.

[1] الطبری: ۱۲/۳۶۸، احمد: ۱۱/۷۲، الادب المفرد: ۱۳۰۱.

هغوی پټ بدنونه ښکاره شو اوداهرڅه دیوزبردستې دښمنني په سبب وو.لکه چه فرمانی (أَفَتَتَّخِذُونَهُ وَذُرِّيَّتَهُ أَوْلِيَاءَ مِن دُونِي وَهُمْ لَكُمْ عَدُوٌّ بِئْسَ لِلظَّالِمِينَ بَدَلًا) یعنی تاسو ابلیس او د هغه قوم خپل دوستان جوړوې او ما پریږدې حالانکه هغه ستاسو دښمن دې. ظالمانوته به ډیره خرابه بدله ملاویږی.

وَإِذَا فَعَلُوا فَاحِشَةً قَالُوا وَجَدْنَا

او هر کله چې | اوکړی دوی دبې حیایئ کارانو وانی دوئ | چې موندلی دی مونږه

| او هر کله چې دوئ دبې شرمئ څه کار اوکړی | نووانی چې مونږ خپل

عَلَيْهَا آبَاءَنَا وَاللَّهُ أَمَرَنَا بِهَا ط قُلْ إِنَّ اللَّهَ لَا يَأْمُرُ

په دغه کاربانديا پلاران زمونږه | اوالله حکم کړی دی مونږته | په دې سره | اووایه | چې بیشکه الله | حکم نه کوی

پلار نیکه (په د اسې) کار کولو موندلي وو | او هم الله راته د دې حکم کړې دې | ورته اووایه چه الله د

بِالْفَحْشَاءِ ط أَتَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ۝ قُلْ

دبې حیایئ په کارونو | آیا تاسو وایئ | په الله باندې | هغه خبری | چې تاسو نه لرئ علم دهغې | ورته اووایه

بې حیایې د کارونو حکم نه کوی | آیاتاسو الله ﷻ باندې داسې دروغ وایې چې خبرتې هم نه یئ

أَمَرَ رَبِّي بِالْقِسْطِ قف وَأَقِيمُوا وُجُوهَكُمْ عِندَ

حکم کړې دې رب زما | په انصاف کولوسره | او نیغ ودروئ | مخونه خپل | په وخت

ورته اووایه چې زما رب د انصاف کولو حکم کړې دې | اوداچې تاسو خپل مخونه دهرسجدې

كُلِّ مَسْجِدٍ وَادْعُوهُ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ ۚ

دهر | عبادت کښې | او رابلئ هغه لره | په داسې حال کښې چې خالص کونکی یئ | هغه لره | د دین

په وخت کښې (بیت الله) ته مخامخ ساتئ | اوداچې صرف دهغه دین خالص ساتئ او هغه رابلئ

كَمَا بَدَأَكُمْ تَعُودُونَ ۝ ط فَرِيقًا هَدَىٰ

لکه څنګه چې | پیدا کړی یئ هغه تاسو | پیدا به کړې شئ تاسوبیا | یوې ډلې ته | هغه لاره ښودلی ده |

لکه څنګه چې مو پیدا کړی یئ | دغه شان به مو راواپس کړو | یوه ډله په هدایت شوه

وَفَرِيقًا حَقَّ عَلَيْهِمُ الضَّلَالَةُ ط إِنَّهُمُ اتَّخَذُوا

او بله ډله چې ده | ثابته شوی ده | په هغوئ باندې | ګمراهي | بیشکه چې هغوئ | انیولی دی

او بله ډله باندې ګمراهي ثابته شوې ده | ځکه چې دوئ د الله ﷻ په ځانې

الشَّيَاطِينَ أَوْلِيَاءَ مِن دُونِ اللَّهِ وَيَحْسَبُونَ أَنَّهُم

شیطانان | سرپرستان | ماسوا د الله | او ګمان کوی هغوئ | چې بیشکه هغوئ

شیطانان خپل مشران جوړ کړی دی | او بیا هم داخیال کوی چې ګنې دوئ

مُّهْتَدُونَ ۝

نیغه لار موندونکی دی |

په سمه لار قائم دی |

**قوله تعالی:: إِنَّ اللّٰهَ لَا يَأْمُرُ بِالْفَحْشَآءِ**
**الله ﷻ دفحش بې حیاکار حکم نه ورکوی اودعربوبربنډ طواف**:-دعربومشرکانو به دکعبې نه بربنډ طواف کولو. او وئیل به ئې چه مونږ د پیداکیدو په وخت کښې څنګه وو هم په هغه حالت کښې به طواف کوو. ښځې به دکپړې په ځای وړه شان د څرمنې تګړه یاڅه بل څه څیز په عورت لګولواوباقی به ټوله بربنډه وه هغې به وئیل چه نن به د بدن بعضې حصه یا پوره حصه ښکاره ساتلې شي خو چه کومه یوه حصه هم ښکاره وی هغه په چاباندې هم حلاله نه ده.نو الله ﷻ دا آیت نازل کړو چه داخلق کله څه دشرم کار کوی نووائی چه مونږ خپل پلار نیکه په دې کارباندې لیدلې دې اود الله ﷻ حکم هم داسې دې. د قریشو نه علاوه ټولوعربو به خپل د شپې ورځې لباس اغوستلوسره طواف نه کولو اود دې توجیه به نې دا کوله چه کومې کپړې اغوستلوسره هغوی ګناه کړې ده په هغه کپړوسره څنګه طواف اوکړی. لیکن د قریشو قبیلې به لباس اغوستلو او یو قریشی (احمس) که چرته یوه کپړه چاته قرض ورکړې وه نو بیا به عاموعربودطواف په وخت کښې اغوستله اویا هغه عرب چه چاسره به بالکل نوې کپړه وه نو بیا به نې داکپړې ویستلې اودهغې به نې څوك هم مالك نه ګڼړلو اوکه چاسره به نوې کپړه نه وه او یا به د یو قریشی نه هم کپړه قرض نه ملاویدله نو هغه به بربنډ طواف کولو او ښځو به هم په عامه توګه بربنډ طواف کولو اودشپې په وخت کښې به نې کولو.دا څیز هغوی د خپل طرف نه ایجاد کړې وو او په دې ذهنیت کښې ئې د خپلو پلارانو اتباع کړې وه.دهغوی داعقیده وه چه د هغوی د پلارانو دا کار د الله ﷻ په حکم سره وو. خو الله ﷻ د دې خبرې نه انکارفرمائی چه اې محمد(ﷺ)! دوی ته اووایه چه دا فحش او خراب کارتاسوکوم کوئی الله ﷻ دداسې کارونوحکم نه ورکوی.تاسو الله ﷻ طرف ته د داسې خبرو نسبت کوئی د کومو د صحیح والی چه تاسو ته څه علم نشته. اووایه چه زما رب خود عدل او استقامت حکم ورکوی. اودا عبادت د الله ﷻ هم په استقامت سره پوره کوئې. هم په دې کښې د رسولانو متابعت دې کوموچه درب عزوجل شریعت پیش کړې اومعجزو خودلوسره ئې تاکیدکړې چه اوس اخلاص اختیار کړئې او چه ترکومې دادواړه خبرې یعنی د شریعت پابندی او په عبادت کښې اخلاص نه وی نو ستاسو به یو عبادت هم نه شی قبلولې.

**اخر الله ﷻ ته ورتلل دی او په ایت مبارك کښې د مفسرینو اقوال**.د الله ﷻ ارشاد دې ﴿ فَرِيقًا هَدَىٰ وَفَرِيقًا حَقَّ عَلَيْهِمُ الضَّلَالَةُ ﴾ددې په معنی کښې دمفسرینواختلاف دې.یعنی د مرګ نه پس به بیا ژوندی کوی په دنیاکښې ئې پیداکړئې او په آخرت کښې به مو اوچتوی. پیدا ئې کړئې چه هیڅ څیز هم نه وئې بیائې مړه کړئې اوبیابه ژوندی کولې شئې. د ابن عباس ؓ نه روایت دې چه حضور ﷺ وعظ او نصیحت د پاره اودریدواو وئې فرمائیل اې خلقواتاسو به ښکاره بربنډ ناخوښته اوچتولې شئ څکه چه د پیداکیدو په وخت کښې تاسوهم داسې وئې. دا په مونږ باندې فرض دی که په مونږ داسې کول وی نو هم دغه به کوو([1]) مجاهد ؒ وائی چه مطلب دادې چه مسلمان به مسلمان او کافر به کافر اوچتوی. ابوالعالیه ؒ وائی دالله ﷻ دعلم مطابق به اوچتولې شی یاڅنګه چه په تقدیرکښې لیکلې دی یاچه څنګه ستاسوعمل وو.دمحمد بن کعب ؒ خیال ووچه که دهغه پیدا کول په بدبختئ سره شوی وی نو شقی جوړولوسره به اوچتولې شی ګنی نیك بخت به جوړولو سره لکه څنګه چه دموسی ؑ په زمانه کښې جادوګرو ټول عمر د بدبختئ عمل کړې وو خود هغوی پیداکیدل د نیك بختئ په بنیاد باندې شوې وو په دې وجه هم په هغه بنیاد باندې د هغوی حشر اوشو.

**د انسان جنتی اودوزخی کیدل دتقدیر فیصله ده**.ابن عباس ؓ فرمائی چه الله ﷻ څوك مؤمن پیدا کړې

[1] صحیح بخاری کتاب الرقاق باب الحشر:۶۵۲۶، صحیح مسلم: ۲۸۶۰، ترمذی:۱۴۲۳، احمد:۲۲۹/۱، مسند الطیالسی: ۲۶۳۸، ابن حبان: ۷۳۴۷.

دي او څوك كافر لكه چه فرمائي ﴿هُوَ الَّذِي خَلَقَكُمْ فَمِنكُمْ كَافِرٌ وَمِنكُم مُّؤْمِنٌ﴾ بيا به هم داسې تاسو اوچتوی لكه څنګه چه ئې پيداكړي ئې. ددې قول تائيد دابن مسعود ﷺ د دې قول نه هم كيږي كوم چه په صحيح بخاري كښې دې چه په الله ﷻ قسم يو سړې د جنتيانوپه شان عمل كوي تردې چه د هغه اود جنت په مينځ كښې د يوګز فاصله پاتې شي چه د تقديرليك په هغه غالب راځي اوهغه د اُور والا عمل كول شروع كړي او هم په هغې باندې مړشي او هم په اُوركښې داخليږي. او يو سړې ټول عمر د اُور والا عمل كوي اود دوزخ نه د يوګز په فاصله باندې پاتې شي چه د الله ﷻ كتاب په هغه غالب راشي بيا هغه د جنتيانو په شان عمل كولو سره مړشي او جنتي جوړشي[1] اوحضور ﷺ فرمائيلي دی چه يوسړې به د خلقو په نظركښې د جنتيانو په شان عمل كونكې ښكاري خو هغه به په حقيقت كښې دوزخي وی او يوبل سړې به د دوزخيانوپه شان عمل كونكې ښكاري خوهغه به په اصل كښې جنتي وی.[2] اعتبارخودهغه اعمالو دې چه كوم د خاتمې په وخت كښې وی اوپه كلمه شهادت باندې ترې سا اوځي. لكه چه فرمائي د مرګ په وخت كښې چه څنګه وو هم هغه شان به اوچتولې شي[3] اوس ضروري دی چه ددې قول اوددې آيت په مينځ كښې ﴿فَأَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّينِ حَنِيفًا﴾توافق قائم شي.اوداحديث هم د الله ﷻ د ارشاد په تائيدكښې فرمائيلې شوې دې چه هر پيداكيدونكې د فطرت په دين باندې پيداكيږي خود دوی مورپلار دې يهودي يا نصراني اويامجوسي جوړوی[4]حضور ﷺ فرمائي چه الله ﷻ فرمائي چه ما خوخپل بنديګان په نيك فطرت باندې پيداكړي وو خو شيطانانو په غولولو سره د دين نه واړول.[5] لنډه دا چه توافق داسې كيدې شي چه الله ﷻ خو هغه داسې پيداكړې چه اول به هغه مؤمن وی څكه چه فطرت كښې هم ايمان دې او دائي هم په تقديركښې ليكلي دی چه بيا به كافركيږي سره د دې چه ټول مخلوق د معرفت او توحيد فطرت لري. لكه څنګه چه د هغوی نه دا وعده هم اخستې شوې وه او هغه ئې د دوی فطري څيز هم جوړكړې وو خو باوجودد دې د هغوی په تقديركښې دا وو چه هغوی خو به يا بدبخت جوړيږي او يا به نيك بخت او په حديث كښې دی چه خلق سحر پاځي نو يا خو هغوی خپل خان خلاصي ته حواله كوي اويائي هلاكت ته حواله كوي.[6]ددې په خلاصي كښې هم د الله ﷻ حكم نافذدې. هم هغه الله ﷻ دې چه ﴿وَالَّذِي قَدَّرَ فَهَدَىٰ﴾ يعني داسې اوګرځولې شوچه هدايت به مومي.﴿ الَّذِي أَعْطَىٰ كُلَّ شَيْءٍ خَلْقَهُ ثُمَّ هَدَىٰ﴾ چا چه هرڅيز ته د هغه خلقت وركړوبيائي په لار اولګولو. په بخاري او مسلم شريف كښې دی چه څوك نيك بخت دی هغوی ته د نيك بختوخلقو غوندې عمل كولوكښې هيڅ سختي نه وی او كوم چه بدبخت وی په هغوی باندې دبد بختو خلقو په شان عمل كول آسانيږي.[7] د دې د پاره اوفرمائيلې شو چه يوه ډله په هدايت ده او په يوه ډله باندې ګمراهي خوره شوې ده. بيا د دې دا علت بيان كړو چه هغوی د الله ﷻ په ځائ شيطانان خپل وليان جوړكړي وو او دا ډير لوئي او ښكاره دليل دې د هغه خلقوپه غلطئي چه ګمان كوی چه الله ﷻ به چاته په څه غلطه عقيده اوګناه باندې عذاب نه وركوی

---

[1] )صحيح بخاری كتاب بدء الخلق باب ذكرالملائكه صلوات الله عليهم:۳۲۰۸، صحيح مسلم:۲۶۴۳، احمد: ۳۸۲/۱، ابن حبان:۱۶۷٤.

[2] )صحيح بخاری كتاب الرقاق باب الاعمال بالخواتيم وما يخاف منها:٦٤۹۳، صحيح مسلم:۱۱۲، احمد:۳۳۵/۵، دلائل النبوه:۲۵۲/٤.

[3] )صحيح مسلم كتاب الجنه باب الامر بحسن الظن بالله تعالى عندالموت ۲۸۷۸، احمد۳۳۱/۳، ابن حبان:۷۳۱۹.

[4] ) د دې تخريج سورت نساء، آيت: ۱۱۹ لاندې تيرشوې دې.

[5] ) صحيح مسلم كتاب الجنه باب الصفات التى يعرف بها فى الدنيا اهل الجنه واهل النار: ۲۸٦۵، مصنف عبدالرزاق:۲۰۰۸۸

[6] ) صحيح مسلم كتاب الطهارت باب فضل الوضوء:۲۲۳، ترمذى: ۳۵۱۷، احمد:۳٤۲/۵، ابن حبان:۷٤٤.

[7] ) صحيح بخارى كتاب الجنائز باب موعظه المحدث ندالقبر وقعود اصحابه حوله:۱۳٦۲، صحيح مسلم:۲٦٤۷. ابوداؤد: ٤٦۹٤، ترمذى: ۲۱۳۷، ابن ماجه:۷۸، احمد:۸۲/۱، مسندابى يعلى:۳۷۵.

کوم وخت چه هغه د خپل عمل د صحيح کيدو پوره يقين وي.او د يو علم او يقين سره که په ضد سره نې اونه مني نو هم هغه ته به عذاب وي. د دې د پاره چه که د هغه هم دغه خيال صحيح وې نو په دې گمراهئ کوم کښې چه خپل ځان په هدايت باندې ګڼړي اوپه هغه ډله کومه چه په حقيقت کښې په ګمراهئ نه وي بلکه په هدايت باندې وي صحيح عمل کوي او په صحيح عقيده باندې دې هيڅ فرق نشته حالانکه الله ﷻ د داسې دوو قسمه خلقو په مينځ کښې فرق خودلې دې.

| يٰبَنِيۡٓ | اٰدَمَ | خُذُوۡا | زِيۡنَتَكُمۡ | عِنۡدَ | كُلِّ |
|---|---|---|---|---|---|
| اے اولاده | دآدم | کوئ | بنائيست خپل | په وخت | دهر |
| انې د آدم اولاده دهر عبادت په موقع باندې خپلې بنانسته جامې اچوئ | | | | | |
| مَسۡجِدٍ | وَّكُلُوۡا | وَاشۡرَبُوۡا | وَلَا تُسۡرِفُوۡا | اِنَّهٗ | لَا يُحِبُّ |
| عبادت کښې | اوخورئ | اوڅکئ | اوحد نه مه اوړئ | بيشکه هغه | نهٔ خوښوي |
| اوحلال څيزونه خورئ څکئ | او اسراف مه کوئ | ..........بيشکه الله ﷻ هغه خلق نه خوښوي | | | |
| الۡمُسۡرِفِيۡنَ ۝ ع | | | | | |
| دحدنه اوړيدونکي | | | | | |
| | | | | | |
| چې کوم اسراف کوي | | | | | |

**قوله تعالى:: خُذُوۡا زِيۡنَتَكُمۡ**

**ښه لباس کوم يودې** :-په دې آياتونوکښې په مشرکانو رد دې چه په بربنډه باندې د بيت الله شريف د طواف عقيده نې لرله چه د ورځې به سړو او د شپې به ښځو کپړو ويستلو سره طواف کولو[1] ځنګه چه ارشاد دې چه د هر مانځه په وخت کښې (په کوم کښې چه د بيت الله شريف د طواف عبادت هم شامل کيدې شي) خپل زينت يعني لباس اغوندئې چه ستاسو بدن د بربنډتوب نه پټ کړي. دې نه علاوه ښې ښې کپړې او زيب او زينت هم کوني. مخکينو امامانو هم دغه ليکلي دي چه دا آيت هم د مشرکانو په بربنډه د طواف کولو سره متعلق دې اود حضرت انس رضی الله عنه نه مرفوعاً روايت دې چه دا آيات په مانځه کښې د ښپلو اچولو سره متعلق نازل شوي دې خود دې صحت غور غوښتونکې دې او هم په دې بناء باندې په حديث کښې فرمائيلي شوی دی چه دمانځه په وخت کښې په ښانست سره مونځ کول مستحب اود ثواب لائق دی. خاص کر د جمعې په ورځ د اخترونوپه ورځ او بهتر دی چه خوشبوئ هم اولګوی ځکه چه دا هم زينت دې اود ټولو نه ښه لباس سپين لباس دې. حضور ﷺ فرمائيلي چه سپينې کپړې اغوندئ ځکه چه دا ټولونه ښه لباس دې خپل مړی هم په دې کفن کوني. په سترګو کښې رانجه اچونې دا نظر تيزوی او ويښته راټوکوي[2] دا حديث جيدالاسناد دې. تميم داری رحمه الله يوځادر په ځلور زره درهم باندې اخستې وو هم دا به نې مونځ کښې اچولو.

**د اسراف نه ممانعت اود اسراف مطلب::** الله ﷻ فرمائيلي ﴿كُلُوۡا وَاشۡرَبُوۡا وَلَا تُسۡرِفُوۡا﴾خورئې څکئې او اسراف مه کوني. په دې آيت کښې ټول طب جمع دې. ابن عباس رضی الله عنه فرمائي چه څه غواړې خوره او چه څه غواړې اغونده په تاباندې هيڅ الزام نشته خو دوه خصلتونه خراب دی يو اسراف او بل غرور او کبر.

---

[1] ) صحيح مسلم كتاب التفسير باب فى قوله ﴿خذوا زينتكم عندكل مسجد﴾:۳۰۲۸.

[2] )ابوداؤد كتاب اللباس باب فى البياض: ٤٠٦١، وهوحسن،ترمذى:٩٩٤، ابن ماجه:١٤٧٢،احمد:٣٤٧/١، ابن حبان:٥٤٢٣، حاكم:٣٥٤/١.

حضورﷺ فرمائیلي چه خورنی څکنی اغوندنی او بل ته ورکونی خو اسراف مه کونی او د شان او غرور د پاره نه وی. الله ﷻ غواړی چه په تاسوباندې د هغه د نعمتونه اثر څرګند وی[۱]دا خود اغوستلو پورې متعلق خبره وه اود خوراك متعلق دا چه حضورﷺ فرمائیلي چه د هغه لوښي نه زیات سپیره لوښي بل نشته چه په هغې کښې به ډکه خیټه اوخوړلې شي د انسان د پاره خو یو څو نوړنی هم کافي دی چه هغه په خپل حالت باندې قائم اوساتلې شي اوکه چرې څه خوړل غواړی نو دریمه حصه خوراك اوخوره او یوه حصه اوبه اوڅکه او یو حصه په آسانئی سره د سا اخستلو د پاره پریږده[۲]حضورﷺ اوفرمائیل چه اسراف دا دې چه څه نی په زړه کښې راشي انسان هغه اوخوری[۳] سدی رحمه الله فرمائی چه کومو خلقو د بیت الله شریف په بربنډه طواف کولو هغوی به د حج په ورځوکښې په ځان چربي حرام کوله. د دې د پاره الله ﷻ فرمائی چه چربي حرامه نه ده خورنی او څکنی او د چربئی په تحریم کښې کوم زیاتې تاسو کړې دې دا مه کونې. مجاهد رحمه الله فرمائی چه خورنی څکنی په دې وجه چه الله ﷻ تاسو ته درکړی دی. عبدالرحمن بن زید رحمه الله فرمائی چه ﴿ولاتسرفوا﴾ مطلب دا دې چه خورنی خو حرام مه خورنی څکه چه دا زیاتې دې. ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه خورنی څکنی خو زیات خوراك ښنباك مه کونی څکه چه هم دغه اسراف دې. الله ﷻ اسراف کونکی نه خوښوی. د ﴿مسرفین﴾ نه ﴿معتدین﴾ مراد دی لکه چه فرمائی ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ ۝﴾ یعنی د حد نه تجاوز کونکی الله ﷻ نه خوښوی. څکه چه غلوکولو سره به نی حلال هم د احتیاط په ګمان سره په ځان حرام کول یا به نی حرام حلال جوړول. د الله ﷻ رضا دا ده چه حلال حلال ګڼړه او حرام حرام، هم دغه عدل دی د کوم حکم چه ورکړې شوي دي.

قُلْ مَنْ حَرَّمَ زِينَةَ اللَّهِ الَّتِيٓ أَخْرَجَ

| اے نبی اووایه | چاحرام کړو | ښائیست دالله | هغه | چی رااېستلي دي هغه

| (اې پیغمبره) دوی ته اووایه چي د الله ﷻ هغه زینت چا حرام کړي دي

لِعِبَادِهِ وَالطَّيِّبَٰتِ مِنَ الرِّزْقِ ۚ قُلْ هِيَ لِلَّذِينَ

دپاره دبندګانو خپلو| اوپاك خیزونه | دررزق نه | اووایه | داټول خیزونه |دپاره دهغه کسانو دی

چي خپلوبندګانودپاره ني پیدا کړی دی | اوپاك رزقونه چا حرام کړی دی| ورته اووایه چي داټول خیزونه

ءَامَنُوا۟ فِي الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا خَالِصَةً يَوْمَ

چي ایمان ني راوړو| په ژوند د دنیاکښې هم | اوخاص به وی دهغوئ دپاره | په ورځ

په دې دنیاکښې د مومنانودپاره پیدا شوی دی| .....او په ورځ د قیامت به

الْقِيَٰمَةِ ۗ كَذَٰلِكَ نُفَصِّلُ الْءَايَٰتِ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ۝

دقیامت | دارنګې | مونږه صفاصفابیانوو| آیتونه| دپاره دهغه قوم| چی پوهیږی |

هم خاص هغوئ د پاره وی | مونږ دغه شان دپوهه خلقو دپاره ښکاره آیتونه بیانوو|

---

۱) احمد:۲/۱۸۲، حاکم: /۱۳۵، ترمذی: ۲۸۱۹ )صحیح) یغنی عنه.

۲ )ترمذی کتاب الزهد باب ماجاء فی کراهیه کثره الاکل: ۲۳۸۰، وهوصحیح، ابن ماجه:۳۳۴۹، السنن الکبری للنسائی:۶۷۶۸، احمد:۴/۱۳۲، ابن حبان:۶۷۴.

۳) ابن ماجه کتاب الاطعمه باب من الاسراف تاکل کل مااشتهیت: ۳۳۵۲، مسندابی یعلی:۲۷۶۵، حلیه الولیاء:۱۰/۲۱۳، شعب الایمان:۲/۱۶۹.

**قوله‌تعالی:: قُلْ مَنْ حَرَّمَ زِينَةَ اللهِ**

**دخوراک ځښاک اواغوستلو حلال څیزپه ځان حرامول:-**په دې آیت کښې رد دې په هغه سړي چه د خوراك ځښاك یااغوستلو څه څیز په خپل ځان حرام کړي او شرعاً څه ممانعت نه وي. اووایه اې محمد(ﷺ)ادې مشرکانو ته چا چه د خپلې فاسدې رائې سره په خپل ځان باندې یو یو څیز حرام کړې دې چه چا د الله ﷻ دا ورکړې شوې زینت حرام کړو کوم چه الله ﷻ د بندیګانود پاره حق ګرځولې دې کوم چه الله ﷻ پیدا کړې دې په دې دنیاوی ژوندون کښې د خپلو عبادت کونکو مؤمنانو بندیګانودپاره سره د دې چه کافران هم په دې کښې شریك دی. خود دې نعمتونو حق په اصل کښې صرف مؤمنان بندیګان لري اودا نعمتونه به په خاص توګه د قیامت په ورځ هم دوی ته ملاویږي به کوموکښې چه کافران نه شي شریکیدلې ځکه چه دجنت نعمتونه به په کافرانوباندې حرام دی.دابن عباس رضي الله عنه نه روایت دې چه عربوبه په بربنده د بیت الله شریف طواف کولووخت کښې شپیلی وهله او لاسونه پړقول نو الله ﷻ اوفرمائیل چه لباس خود الله ﷻ زینت اوښانست دې ددې اغوستوسره طواف کوئی

| قُلْ إِنَّمَا | حَرَّمَ | رَبِّيَ | الْفَوَاحِشَ | مَا | ظَهَرَ | مِنْهَا | وَمَا بَطَنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ورته اووایه بیشکه | حرام کړی دی | رب زما | دبې حیایۍ کارونه | هغه څه | چې ظاهر وي | دهغې نه | اوهغه پټ چې وي |
| ورته اووایه چې زما رب د بې شرمۍ پټ اوښکاره کارونه ټول حرام کړی دی | | | | | | | |
| وَالْإِثْمَ | وَالْبَغْيَ | بِغَيْرِ الْحَقِّ | وَأَنْ تُشْرِكُوا | بِاللهِ | مَا | لَمْ | |
| اوګناه | اوزیاتي | په ناحقه سره | او چې تاسو شریك کړئ | دالله سره | هغه څیز | چې نۀ دې | |
| اوګناه اوناحقه ظلم اودا چې تاسو الله ﷻ سره شریک پیدا کړئ چې | | | | | | | |
| يُنَزِّلْ | بِهِ | سُلْطَانًا | وَأَنْ تَقُولُوا | عَلَى اللهِ | مَا | | |
| نازل کړې | په هغې باندې | هیڅ دلیل | اوداچې اووایئ تاسو | په الله باندې | هغه خبرې | | |
| الله ﷻ د هغې په جواز هیڅ سند نه دې نازل کړې اوتاسو په الله ﷻ پورې داسې خبرې تړئ چې | | | | | | | |
| لَا تَعْلَمُونَ ۝ | | | | | | | |
| چې تاسو ته معلومې نۀ وي چې الله وئیلي دي | | | | | | | |
| تاسوپرې هم نه پوهیږئ | | | | | | | |

**قوله‌تعالی:: قُلْ إِنَّمَا حَرَّمَ رَبِّيَ الْفَوَاحِشَ**

**د ټولونه زیاته غیرت منده هستي :-** رسول الله ﷺ فرمائیل چه د الله ﷻ نه زیات څوك غیرت مند نشته. په دې وجه الله ﷻ ټولې پټې او ښکاره د ګناه خبرې حرام کړی دی او هغه بنده الله ﷻ ته د ټولونه زیات خوښ دې چه هروخت د الله ﷻ حمد او ثناء کوی او ناحق او ناروا ګناه خطا نی هم حرامه کړې ده. [1]

**دالْإِثْمَ او الْبَغْيَ نه مراد څه دي؟**انس رضي الله عنه فرمائی چه د اثم معنی ده ګناه اودبغی معنی ده بغیر حقه د خلقو مال او په ناحقه دخلقو عزت په زور اخستلوکښې زیاتې کول.مجاهد رحمه الله فرمائی چه باغی هغه

[1]) صحیح بخاری کتاب التفسیرسوره الانعام باب قوله تعالی ﴿ولاتقربوا الفواحش ما ظهر منها وما بطن﴾ :٤٦٣٤، صحیح مسلم:٢٧٦٠، ترمذی:٣٥٠٣، السنن الکبری للنسائی:١١١٧٣، احمد:٣٨١/١، ابن حبان:٢٩٤.



کس دې چه پخپله په خپل نفس باندې بغاوت اوکړي او د بحث حاصل تفسير دا دې چه اثم هغه خطا ده چه د کونکي دخپل ذات سره متعلق وي او بغي هغه زياتې دې چه دخلقو پورې ورزيات شي. الله ﷻ دا دواړه څيزونه حرام ګرځولي او فرمائي چه د الله ﷻ سره شريك جوړول حرام دي د کوم چه هيڅ سند هم نشته او چاته د الله ﷻ سره د شراکت جوړولو هيڅ حق هم نشته. اودا هم حرام دی چه هغه خبرې اوکړي چه ته نی نه پيژنې يعني دا چه نعوذبالله د الله ﷻ اولاد دې او هم دا قسم خبرې د کومو چه څه علم او يقين نه وی لکه چه فرمائي د بت پرستنې د ګندګنې نه خان بچ کړئ.

وَلِكُلِّ اُمَّةٍ اَجَلٌ ۚ فَاِذَا

|اودپاره دهر امت| يوه نيته د ه|نو هرکله چې

| اودهر قوم دپاره دمهلت يوه نيته مقررده | نوهرکله چې

جَآءَ اَجَلُهُمْ لَا يَسْتَاْخِرُوْنَ سَاعَةً وَّلَا يَسْتَقْدِمُوْنَ ۝

راشي | نيته دهغوئ | روستو به نشي هغوئ |يوساعت | اونه به مخکښې شی دهغه نه

نيتهٔ پوره شی | نونه به يوساعت روستو شی | او نه به يوساعت مخکښې شی

يٰبَنِيْٓ اٰدَمَ اِمَّا يَاْتِيَنَّكُمْ رُسُلٌ مِّنْكُمْ يَقُصُّوْنَ

اې اولاده | دآدم | که چرې | راشي تاسو ته | رسولان | ستاسو نه | چې بيانوی هغوئ

انې دادم اولاده ! که تاسو ته ستاسودقوم نه پيغمبران راشي | چې هغه

عَلَيْكُمْ اٰيٰتِيْ ۙ فَمَنِ اتَّقٰى وَاَصْلَحَ

په تاسو باندې| آيتونه زما|نوهغه څوك|چې خان ني اوساتلودنافرمانئ نه |اواصلاح ني اوکړه

تاسوته زماحکمونه بيانوی| نوچا چې خان د شرک نه بچ کړه | او نيک کارونه ني اوکړل

فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ۝ وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا

نونهٔ به وی يره | په هغوئ باندې| اونهٔ به هغوئ| غمجن کيږی |اوهغه کسان |چې دروغ نې اوګڼړل

نو په هغوئ به نه څه ويره وی | اونه به هغوئ غمژن شي|......... او هغه کسان چې

بِاٰيٰتِنَا وَاسْتَكْبَرُوْا عَنْهَآ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ

آيتونه زمونږه| اولوني اوکړه|په مقابله دهغې کښې|هم دغه کسان | خاوندان دوور دی | هغوئ به

زمونږ ايتونو ته ني دروغ ونيلی دی | اوکبر ني کړې دې| نوهغوئ دوزخيان دی | هغوی به

فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ۝ فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى

په هغې کښې | هميشه وی | نوخوك دی | زيات ظالم | دهغه چانه | چې اوتړی

هميشه به دې کښې وی | .........نودهغه چا نه لوئې ظالم څوک کيدې شی | چې

عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَوْ كَذَّبَ بِاٰيٰتِهٖ ۭ اُولٰٓئِكَ يَنَالُهُمْ

په الله باندې| دروغ | يادروغ اوګڼړی| آيتونه دهغه | دا کسان چې دی | رسيږی به دوئ ته |

په الله باندې ني دروغ تړلی وی | ياني د هغه آيتونو ته د دروغو نسبت کړې وی| دوئ ته به دالله ﷻ

نَصِيبُهُم مِّنَ الْكِتٰبِ ؕ حَتّٰٓى إِذَا جَآءَتْهُمْ رُسُلُنَا

حصه ددوی دلیکلی شوی تقدیرنه|ترهغه پوري |چی کله|راشی دوی ته|راالیږلی شوی فرښتي زمونږ

د فیصلي مطابق ددوی حصه اورسی| خوکله چي ورته زمونږ فرشتي دروح اخستو دپاره راشی

يَتَوَفَّوْنَهُمْ ۙ قَالُوٓا أَيْنَ مَا كُنتُمْ تَدْعُونَ

چي وفات کوی دوی|اوبه وائی |چی کوم خاني دی|هغه|چیٔ ویٔ تاسو| چی رابلل به تاسو

..........نوورته به اووائی چي ستاسو هغه معبودان څه شول چي تاسو به د الله ﷻ نه

مِن دُونِ اللّٰهِ ؕ قَالُوا ضَلُّوا عَنَّا وَشَهِدُوا عَلٰٓى أَنفُسِهِمْ

بغیر د الله نه| اوبه وائی اورك شو هغوی| زمونږ نه | اوګواهی به اوکړی |په خانونو خپلو باندي

سوا رابلل|.........دوی به اووائی چي تول رانه ورک شول| اوپخپل ځان به پخپله ګواهی اوکړی

أَنَّهُمْ كَانُوا كٰفِرِينَ ۝

چی بیشکه |هغوی وو| دحق نه منکر |

چي مونږ د حق نه انکارکونکی ووا

**قوله‌تعالی:: فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ....... أُولٰٓئِكَ أَصْحٰبُ النَّارِ ۚ**

**نیکانوته زیرې اوبدانوته د عذاب وعید:-** ارشاد دې چه دهرامت دپاره یو میقات معلوم اووخت مقرر دې اوچه کله هغه وخت راشی نو بیا د یوې ګهړئی هم وړاندیوالې روستووالې نه شی کیدې. بیا بنیادم الله ﷻ ویروی چه ګوره تاسوته به زمونږ رسولان راځی تاسو ته به زمونږ آیاتونه اوروی زیری به هم درکوی او ویروی به مو هم. اوس چه څوك اوویریدو نو هغه خپله اصلاح اوکړه، محرمات نی پریخودل داطاعت کارونه نی اوکړل نوهغه به نه څه ویرې سره مخ کولې شی اونه به نی څه غم اوخفګان راګیروی.خو چه څوك زمونږ آیاتونه دروغ ګنړی او د کبر نه کار اخلی هم دغه خلق د اُور خاوندان دی چه په هغې کښې به د همیشه د پاره وی.

**قوله‌تعالی:: فَمَنْ أَظْلَمُ**

**د ظالمانود مرګ فرښتې سره ملاقات:-** ارشاد دې چه د هغه نه لویٔ ظالم بل څوك نشته چه په الله ﷻ د ځان نه دروغ اوتړی،دهغه آیاتونه او معجزې دروغ اوګنړی،داخلق به د خپل لیکلې شوی تقدیر نه خپله حصه بیامومی. مفسرینو د دې په معنی کښې اختلاف کړې دې. ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه دهغه مخ به تك تور شی او هغه دا چه څوك خیرکوی هغه ته به د خیر بدله ملاویږی اود بدو بدله به بده ملاویږی. یا د خپلې حصې نه مراد خپل عمل خپل رزق او خپل عمر. اودا قول د معنی اود عبارت د سیاق په لحاظ سره قوی دې. په دې باندې د الله ﷻ دا قول دلالت کوی چه کله زمونږ فرښتې د هغوی روح قبض کولوله راشی اوددې آیت دمعنی مثال داقول پاك دې چه کوم خلق په الله ﷻ د ځان نه دروغ تړی هغوی به د دنیا د سامان نه هیڅ حصه نه بیامومی او چه کله بیا زمونږ طرف ته واپس کیږی نود هغوی د کفر په سبب به مونږ هغوی ته دردناك عذاب ورڅکو. بیائی اوفرمائیل چه که څوك کفر کوی نو کوی دې تادې د هغوی کفر په خفګان او تکلیف کښې نه اچوی هغوی به آخر هم زمونږ طرف ته واپس راګرځی هغه وخت به د هغوی اعمال په هغوی باندې ښکاره کړې شی الله ﷻ د زړونو حال پیژندونکې دې. مونږ خو د یوڅو ورځو نفعه هغوی ته ورکړې وه.

الله ﷻ په دې پورتني ایت کښې خبر ورکوی چه ملائکې کله د مشرکانو روح قبض کوی نود مرګ په وخت کښې به هغوی ویروی او روح به ئې د قبض کولو سره دوزخ ته اوړی او هغوی ته به وائی چه اوس هغه چرته دې کوم چه تا د الله ﷻ د پاره شریکان ګرځول، هم د هغوی نه به دې دعا غوښتله او هم د هغوی عبادت به دې کولو. هم هغوی راؤغواړه چه تا د دوزخ نه خلاص کړی نو هغه به وائی چه هغوی اوس چرته دی هغه خو ټول اوتختیدل. زمونږ خو اوس د هغوی نه څه امید نشته او په خپله څله به اقرار کوی چه مونږ به کفر کولو.

| | | |
|---|---|---|
| قَالَ | ادْخُلُوْا | فِيْٓ اُمَمٍ |
| اوبه وائی | ننوځئ | په هغه ډلو کښې |

| الله ﷻ به ورته اوفرمائی چې هغه امتونو سره دوزخ ته داخل شئ |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قَدْ خَلَتْ | مِنْ قَبْلِكُمْ | مِّنَ الْجِنِّ | وَالْاِنْسِ | فِي النَّارِ | كُلَّمَا |
| چې تلې دي | مخکښې ستاسونه | دپیریانو نه | اودانسانانو نه | په وور کښې | هرکله چې |

| چې ستاسونه وړاندې تیرشوی وو | که پیریان وو اوکه انسانان وو | .................هرکله چې |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| دَخَلَتْ اُمَّةٌ | لَّعَنَتْ | اُخْتَهَا | حَتّٰى | اِذَا |
| ننوځئ \| یوه ډله | نو لعنت به وائی | په وړاندینئ ډلې خپلې باندې | تردې پورې | چې کله |

| یوه ډله دوزخ ته داخله شی | نو په بله ډله به لعنت وائی | .........تردې چې |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ادَّارَكُوْا | فِيْهَا جَمِيْعًا | قَالَتْ | اُخْرٰىهُمْ | لِاُوْلٰىهُمْ |
| راجمع شی هغوی \| په هغې کښې | ټول | انواوبه وائی اروستئ ډله دهغوئ | په حق دړومبئ ډلې خپلې کښې |

| ټول سره یو ځائې شی | نو هرهٔ وړاندینئ ډله به دروستئ ډلې باره کښې وائی |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| رَبَّنَا | هٰٓؤُلَآءِ | اَضَلُّوْنَا | فَاٰتِهِمْ | عَذَابًا ضِعْفًا |
| چې اے ربه زمونږه | دې کسانو | ګمراه کړی وو مونږه | نو ورکړه دوئ ته \| عذاب | دوچند |

| چې اني زمونږه ربه ! دې خلقو مونږ ګمراه کړی وو \| نوته دوی ته زمونږ په نسبت داور دوچنده عذاب ورکړه |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِّنَ النَّارِ | قَالَ | لِكُلٍّ | ضِعْفٌ | وَّلٰكِنْ | لَّا تَعْلَمُوْنَ ۝ |
| داوورنه | اوبه وائی الله | دپاره دهرې ډلې | دوچندی دی | خولیکن | نه پوهیږئ تاسو |

| الله ﷻ به ورته اوفرمائی چې هرچا دپاره عذاب دوچنده دې \| خو تاسو پرې نه پوهیږئ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَقَالَتْ | اُوْلٰىهُمْ | لِاُخْرٰىهُمْ | فَمَا كَانَ | لَكُمْ عَلَيْنَا |
| اواوبه وائی \| مخکښې ډله | اروستئ ډلې ته | پس نه وو | تاسولره | په مونږ باندې |

| او مخکښې ډله به روستئ ته اووائی \| که زمونږ د عذاب قابل یونو، تاسو ته |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ فَضْلٍ | فَذُوْقُوا | الْعَذَابَ | بِمَا | كُنْتُمْ | تَكْسِبُوْنَ ۝ |
| څه غوره والې | نو اوڅکئ | عذاب | په سبب دهغې | چې وئ تاسو | چې کول به مو |

| خو هم زمونږ مقابله کښې فضیلت نه دې حاصل \| نودخپل عمل په وجه دعذاب خوند اوڅکئ |

**قوله تعالی:: رَبَّنَا هٰٓؤُلَآءِ أَضَلُّونَا**

**دکافرانو یو بل ګناهګار ګڼړل:-** الله ﷻ د مشرکانو د دې خبرو خبرورکوی کوم چه هغوی په الله ﷻ باندې زیاتی او د ځان نه تړلې. هغوی ته به ونیلې شی چه تاسو د خپل ځان په شان ډلوکښې شامل شئ کوم چه ستاسود صفتونو والا دی او کوم چه تاسو نه وړاندې تیرشوی دی که هغه د پیریانونه وی اوکه د انسانانو نه وی اوبیاددوزخ لار واخلئ. ﴿مِّنَ الْجِنِّ وَالْإِنسِ﴾ محتمل دې ﴿فِيٓ أُمَمٍ﴾ بدل شو اودا هم محتمل دې چه د﴿فِيٓ أُمَمٍ﴾په معنی کښې وی د امم سره.د الله ﷻ قول دې ﴿كُلَّمَا دَخَلَتْ أُمَّةٌ لَّعَنَتْ أُخْتَهَا﴾یعنی چه کله یو نوې ډله دوزخ کښې ورواچولې شی نو یو بل ته به بد وائی(خلیل الله ﷺ) فرمائی چه د قیامت په ورځ به یوکافر بل کافرسره په بحث شی او خپل مینځ کښې به یوبل ته بدرد وائی) ارشاد دې چه کله د کافرانو دا تابعین د خپلو متبوعینونه د سخت خفګان څرګندونه اوکړی او کله هغوی د الله ﷻ عذاب اووینی اوخپل مینځ کښې نی تعلقات ختم شی نودا تابعین به وائی چه افسوس مونږ ته بیا د دنیا تګ نصیب شی نوچه څنګه دوی نن زمونږنه جدا شوی دی دغه شان به مونږهم ددوی نه دویزارئی اظهار اوکړو اودوی نه به بدله واخلو. الله ﷻ به دغه شان د ارمان او افسوس په رنګ کښې پیش کړې شوې عملونه هغوی ته اوښائی خود دوزخ نه به هغوی په هیڅ رنګ هم بهر نه شی. تردې چه کله هغوی ټول په دوزخ کښې راجمع شی نو روستو دوزخ کښې داخل شوی تابعین به د خپلو متبوعینو باره کښې وائی هغه متبوعین د چا جرم چه په مقابله د تابعینوکښې زیات سخت وو هغوی د اول نه داخل شوی دی. الله ﷻ ته به د خپلو متبوعینونه شکایت کوی چه هم دوی مونږ د نیغې لارې نه ګمراه کړی وو په دې وجه اې الله دوی ته دوزخ کښې دوچنده عذاب ورکړه([1])لکه چه د الله ﷻ ارشاد دې په کومه ورځ چه په أورکښې اوسوزی اود دوی مخونه تك تور شی نو هغوی به وائی چه افسوس مونږ د الله ﷻ اود الله ﷻ د رسول ﷺ تابعداری کړې وه. اې الله مونږ دخپلو مشرانوخبره منلې وه او هغوی مونږ دهوکه کړی وواې الله دوی ته دوچنده عذاب ورکړه نوالله ﷻ به فرمائی چه نه تاسو ټولوته به دوچنده عذاب ملاوېږی.لکه چه فرمائی کوم خلق چه کفر کوی او خلق د الله ﷻ د لارې نه بندوی مونږ به د هغوی عذابونه زیاتوو. او هغوی به د خپلو ګناهونوبوج هم اوچتوی اودنورو د ګناهونو بوج هم. متبوعین به خپلو تابعینوته وائی چه اوس ستاسو په مونږ باندې کوم غوره والې پاتې شو تاسو هم دغه شان په خپله ګمراه شوئی لکه څنګه چه مونږ شوې وو نو اوس د خپلو عملونو مزه اوڅکئی. د هغوی دا حالت داسې دې د کوم خبر چه الله ﷻ داسې ورکړې دې چه اې نبی ﷺ افسوس چه تا دا کافران لیدلې چه هغوی د خپل رب په وړاندې ولاړ دی او په یو بل باندې الزام لګوی او تابعین خپلو متبوعینوته وائی که چرې تاسو نه وئی نو مونږ به مؤمنان وو او متبوعین به خپلو تابعینو ته وائی چه د هدایت قبلولو نه مونږ منع کړی وئی تاسو خو پخپله ګمراه شوی وئی د عقل نه مو ولې کار نه اخستلو او تابعین به متبوعینو ته وائی دا خو هم ستاسو د شپې ورځې دهوکه کول وو چه تاسو به مونږ په کفر باندې مجبوره کولو او په خدائی کښې مو شریك ګرځول بیا به پټ پټ پخپله ستومانه شی أوکله چه د الله ﷻ عذاب اوګوری او مونږ به د هغوی په ستونوکښې طوقونه اچوو او چه څنګه به نی کول هم هغه شان بدله به ورته ملاوېږی.([2])

| إِنَّ الَّذِينَ | كَذَّبُوا | بِآيَاتِنَا | وَاسْتَكْبَرُوا |
|---|---|---|---|
| بیشکه هغه کسان | چی دروغ ئې ګڼړلی دی | ایتونه زمونږه | اوسرکشي ئې کړی ده |
| چا چې زمونږ ایتونه دروغ اوګڼړل | او د هغې د منلونه ئې ځانونه لوئې اوګڼړل (چه ایمان ئې پرې رانړول) | | |

[1]) ۳۳/الاحزاب: ٦٦-٦٧.

[2]) ۳٤/سبا: ۳۱،۳۳.

| عَنۡهَا | لَا تُفَتَّحُ | لَهُمۡ | اَبۡوَابُ | السَّمَآءِ |
|---|---|---|---|---|
| په مقابله دهغې کښې | نو بيرته به نۀ کړې شي | هغوئ ته | دروازې | دآسمان |

هغوئ ته به دآسمان دروازې هيڅکله بيرته نشي ا

| وَلَا يَدۡخُلُوۡنَ | الۡجَنَّةَ | حَتّٰى يَلِجَ | الۡجَمَلُ | فِىۡ سَمِّ | الۡخِيَاطِ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوداخل به نشي هغوئ | جنت ته | تر هغې چې ننوځئ | اوښ | په سوري کښې | دستن |

اوجت ته به ترهغې داخل نشي چې ترڅوپورې اوښ د ستنې سوم کښې تير نشي

| وَكَذٰلِكَ | نَجۡزِى الۡمُجۡرِمِيۡنَ | لَهُمۡ | مِّنۡ | جَهَنَّمَ | مِهَادٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| اودارنګې | بدله ورکوو مونږ | مجرمانو ته | دې دهغوئ دپاره | دوزخ نه | فرش |

اومونږ مجرمانو ته هم داشان بدله ورکوو ا دهغوئ لاندې به د اور بچاونړه غوړيدلې وي

| وَّمِنۡ فَوۡقِهِمۡ | غَوَاشٍ | وَكَذٰلِكَ | نَجۡزِى | الظّٰلِمِيۡنَ |
|---|---|---|---|---|
| اودپاسه دهغوئ نه | څادر دوورا | اودارنګې | بدله ورکوو مونږه | ظالمانوله |

اودپاسه به ئې داورڅادر اغوستي وي ا اومونږ داسې ظالمانو ته هم داشان بدله ورکوو ا

قوله تعالٰى:: لَهُمۡ مِّنۡ جَهَنَّمَ مِهَادٌ وَّمِنۡ فَوۡقِهِمۡ غَوَاشٍ.

**د کافرانوروح ته د اسمان دروازې نه کولاويږي** :-کومو خلقو چه زمونږ آياتونه دروغ ګڼړلي دی اود هغې نه ئې مخ اړولې دهغوی دپاره به دآسمان دروازې نه کولاويږي يعنی نه به دهغوی نيك عمل پورته خيژی اونه دهغوی دعاګانې.رسول الله ﷺ د فاجرسړی دروح د وتلو ذکر کولو کښې فرمائيل چه فرښتې به روح اخلی او آسمان ته خيژی اود ملاء اعلی په کوموفرښتو چه هغه تيريږی نو هغوی به تپوس کوی چه دا کوم خبيث روح دې؟ نودهغه د ټولونه خراب نوم اخستوسره به وائی چه د فلانکی دې ترديې چه آسمان ته به اورسی او وائی به چه دروازه کولاؤ کړئی خودروازه به نه کولاويږی.

قوله تعالٰى:: لَا تُفَتَّحُ لَهُمۡ اَبۡوَابُ السَّمَآءِ

لکه چه ارشاددې (لَا تُفَتَّحُ لَهُمۡ اَبۡوَابُ السَّمَآءِ) براء بن عازب رضي الله عنه فرمائی چه مونږ د يو انصاری په جنازه کښې شريك وونبیٔکريم ﷺ سره روان وو اوقبرته اورسيدو نوحضور ﷺ هلته کيناستومونږ هم دهغوی ﷺ نه چاپيره داسې چپ ناست وولکه چه زمونږ په سرونومرغنی ناستې وی.(چه مونږ ئی چپ او بې حرکته اوليدو)نود حضور ﷺ په لاس کښې يو ډکې وو په زمکه باندې ئی د مشغولتيا په توګه کرخې راښکلې. بياحضور ﷺ خپل سر اوچت کړو او وئی فرمائيل د عذاب قبر نه د الله ﷻ نه پناه اوغوارئی دوه يا درې ځل ئی اوفرمائيل بيا ارشاد اوفرمائيلې شو چه کله مؤمن د دنيا نه اوچتولې شي اود آخرت طرف ته مخ کوی نود آسمان د روښانه مخونو فرښتې راکوزيږی د جنت کفن ورسره وی بيا ملك الموت د هغه سر ته کينی اووائی اې روح مطمئنه د الله ﷻ دبخښنې طرف ته روان شه دې اوريدو سره راوځی لکه څنګه چه د مشك د ځلې نه د اوبو څاڅکی راوځی.دروح راوتلو سره دسترګو په رپ کښې هغه ته جنتی کفن اغوستې شی او په جنتی خوشبوکښې راغونډولې شی هغه د مشك داسې بهترينه خوشبو وی چه کومه په دنياکښې بهترينه کيدې شی. دا واخلی او آسمان ته خيژی په کوم ځائ چه تيريږی فرښتې وائی چه دا دچا پاك روح اورنی؟ ونيلې کيږی چه د فلانکی خوئ د فلانکی. آسمان ته په رسيدو باندې د دروازې کولاوولو د پاره وائی نو دروازه کولاويږی. هغوی سره نورې ټولې فرښتې د دونم آسمان

پورې خې.دغه شان دیو اسمان نه بل او تراووم اسمان پورې رسي.اوس الله ﷻ فرمائي چه زما د دې نیك بنده نوم د علیین په دفترکښې اولیکئ او د زمکې طرف ته ئې واپس کړئ. نود هغه روح واپس کولې شي. دلته هغه فرښتې راځي او هغه سره کینی او تپوس ترینه کوی ستا رب څوك دې؟ هغه وائي الله ﷻ زمارب دې. هغه بیا تپوس کوی ستا دین کوم یو دې نو هغه وائي زما دین اسلام دې. بیا تپوس کوی چه هغه سړې څوك وو چه ستاسو طرف ته لیږلې شوې وو هغه وائي چه د الله ﷻ رسول ﷺ حضرت محمد ﷺ وو. بیا تپوس کوي ستا د عمل ذریعه څه وه هغه وائي ما د الله ﷻ کتاب لوستلې وو په هغې مې ایمان راوړې وو. بیا د آسمان نه یو آواز راځي چه زما بنده رښتیا اوونیل د ده د پاره د جنت فرش راوړئ دجنت لباس ورواغوندئ دده دپاره دجنت یوه دروازه کولاؤ کړئ چه دجنت هوا او خوشبوئي ده ته رسي. دده قبر د ده د نظر برابر کولاؤکړې شي. یوښکلې سړې په ښه لباس او ښه خوشبوئ لګولې دیته راشي او ورته وائي خوشحاله شه چه تاسره کومه وعده کړې شوې وه هغه نن پوره کولې شي. هغه به تپوس کوی ته څوك ئې؟ هغه سړې به وائي زه ستا نیك عمل یم نو مړې به وائي یا الله هم دې وخت کښې قیامت راوله چه زه خپل اهل او مال سره ملاؤشم. حضور ﷺ اوفرمائیل چه کله کافرنده د دې دنیا نه مخ واړوی نو د تور رنګ فرښتې د بوجئي ټکره راوړي او راشي او ترکومې چه نظر لګی د هغه حده پورې وی بیا ملك الموت راځي او وائي اې خبیث روحه راوځه اود الله ﷻ خفګان او غضب طرف ته څه نو هغه په بدن کښې ورننوزي نو فرښتې هغه په راښکلو سره راوباسی لکه څنګه چه د اوسپنې سیخ دلمدو وېښتونه راویستلې شي.هغه دا دسترګوپه رپ کښې په هغه بوجئي کښې رانغاړي د هغې نه د سخاشوې مرداري په شان بوئ خیژي. دا واخلي او آسمان ته خیژي نو چه په کوم خاې تیریږي فرښتې تپوس کوی دا د چا خبیث روح دې؟ ونیلې شي فلانکې خوئ د فلانکي. اوکله چه آسمان ته رسي نو وائي دروازه کولاؤ کړئ نو نه شي کولاوولې بیا حضور ﷺ د ﴿لَا تُفَتَّحُ﴾ والا آیت تلاوت کړو.

اوس الله ﷻ حکم فرمائي چه دې دزمکې لاندې طبقې سجین ته یوسئ نود هغه روح هلته غورزولې شي. بیا حضور ﷺ دا آیت تلاوت کړو څوك چه الله ﷻ سره شریك ګرځوی نولکه چه د آسمان نه راپریوتلو او مرغئ د هغه غوښه راشوکوی یاهواګانې ئې ترلرې پورې الوزوی.دهغه روح دهغه بدن ته واپس کولې شي.دوه فرښتې راځي اوتپوس کوی ستا رب څوك دې؟ هغه وائي افسوس ماته پته نشته. بیا تپوس کوی ستا دین څه دې؟هغه جواب ورکوی هانې ماته پته نشته. بیا تپوس کوی چه ستا طرف ته څوك درلیږلې شوې وو هغه وائي افسوس ماته پته نشته.بیادآسمان نه آواز راځي زما بنده دروغ وائي د ده دپاره د دوزخ فرش راوړئ اوده ته د دوزخ دروازه کولاؤ کړئ چه ده ته د دوزخ ګرموالې او ګرمه هوا وررسي. دده قبر په ده باندې راتنګ کړې شي اودومره زور ورکوی چه هډوکی پښتئ یوخاې شي. یوخراب شکل او سخا خیرنو جاموکښې بدبوداره سړې دله راځي او ورته وائي تاته ستا د بدبختو زیرې دې.دا هم هغه ورځ ده دکومې چه تاسره وعده وه. هغه تپوس کوی ته څوك ئې؟هغه وائي زه ستا بدعمل یم نو کافر وائي چه الله ﷻ دې اوکړی چه قیامت رانه شي(ځکه چه زه دوزخ ته لاړ نه شم).([1])

براء بن عازب ﷺ فرمائي چه مونږ حضور ﷺ سره بهر وتلې ووجنازې سره وو(باقي بیان د پورتنی بیان په شان دې) تر دې چه کله د مؤمن روح اوخې نود آسمان او زمکې فرښتې په ده باندې درود لیږي، دهغه د پاره د آسمان دروازې کولاویږي د ټولو فرښتو هم دغه دعا وی چه د ده د روح هم زمونږ په مخه یوسئ.دکافر په روح باندې یوه دأسې فرښته مقررولې شي چه ړنده کڼه او ګونګه وی، د هغې په لاس

[1] )ابوداؤد کتاب السنة باب المسئلة فی القبر وعذاب القبر:۴۷۵۳ وهوصحیح، احمد:۴/۲۸۷-۲۸۸، الشریعه للاجری: ۸۷۸،حاکم:۱/۳۷، شعب الایمان:۳۹۵، اصول الاعتقاد:۲۱۴۰، ذ دیګ اسنادهٔ صحیح درجیګ دی. اوګګورئی الموسوعه الحدیثیه:۳۰/۵۰۳.

کښې ګرځ وي که چرې غربرې اووهی نو هغه به هم ریزه ریزه شي. دهغې په يو ګذارسره هغه ذره ذره شي او خاورې شي بيا هغه هم هغه شان د الله ﷻ په حکم جوړشی بيا نی يو بل ګذار اووهی هغه چغې وهی چه د پيريانو او انسانانونه علاوه نی ټول مخلوق اوري. بيا د دوزخ دروازه کولاوولې شي او اور مرکيږي[1] (دابوهريره ﷺ نه يو روايت هم نيزدې نيزدې هم داسې دې په دې وجه ترجمه غيرضروري ده) د الله ﷻ قول دي ﴿لَا تُفَتَّحُ لَهُمْ أَبْوَابُ السَّمَاءِ﴾ يعنی که دستنې دخوم نه اوښ بهر راوتلې شی نو کافر به هم په جنت کښې داخل شي. غرض دا چه هيڅ کله به هم نه شي کيدې. ابن عباس ﷺ لفظ جمل لوستلو يعنی د جيم په ضمه او ميم په تشديد سره "جمل" پيړې رسئی ته وائی کومې سره چه کشتنئ ترلې شي.

وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا إِلَّا

اوهغه کسان چې ايمان ئې راوړې دې | اوکارونه ئې کړې دي نيک | نۀ ورکووتکليف مونږه | يونفس ته | مګر

اوچا چې ايمان راوړو | اونيک عملونه ئې اوکړل | اومونږچاته د طاقت نه زيات تکليف نه ورکوو

وُسْعَهَا أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ ۖ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿٤٢﴾

په قدرد طاقت دهغه | داکسان | خاوندان دجنت دی | هغوئ به | په هغې کښې | هميشه وي

دغه خلق جنتيان دی | او هم په دې کښې به دوئ هميشه به وي

وَنَزَعْنَا مَا فِي صُدُورِهِمْ مِنْ غِلٍّ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهِمُ

اواوبه باسو مونږه | هغه | چې وي په سينو دهغوئ کښی | دکينې نه | بهيږی به | لاندې دهغوئ نه

اودهغوئ په زړونو کښې چې ديوبل خلاف څه لږډيرخيرې وو | هغه به لرې کړو | دهغوئ لاندې به

الْأَنْهَارُ ۖ وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي هَدَانَا لِهَٰذَا

نهرونه | اووائی به هغوئ | ثنا | خاص الله لره ده | هغه | چې وې ښودله مونږ ته | دالار

ولې بهيږی | اوهغوئ به وائی چې تعريفونه هغه الله ﷻ لره دی | چې مونږ ته دا لار اوخودله

وَمَا كُنَّا لِنَهْتَدِيَ لَوْلَا أَنْ هَدَانَا اللَّهُ ۖ لَقَدْ

اونۀ وو | مونږ پخپله | چې موندلې مووې دا لار | که نۀ وې | ښودلې مونږ ته | الله | په تحقيق سره

اوکه الله ﷻ راته نه وې خودلې | نو مونږ پخپله نشوه موندلې |

جَاءَتْ رُسُلُ رَبِّنَا بِالْحَقِّ ۖ وَنُودُوا أَنْ تِلْكُمُ

راغلې وو | رسولان | درب زمونږه | دحق سره | اوآواز به اوکړې شي | چې دغه ستاسو

مونږ ته دالله ﷻ رسولان په حقه راغلي وو | او آواز به ورته اوشي چه دا هغه جنت دي

الْجَنَّةُ أُورِثْتُمُوهَا بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٤٣﴾

جنت دې | چې تاسو وارثان جوړکړې شوي يئ دهغې | په سبب دهغې | چې وئ تاسو | چې کول به مو

چې تاسو ته دخپلو (نيکو) عملونو په وجه درکړې شوې دې |

---

(١) احمد: ٤/٢٩٥-٢٩٦.

**قوله تعالى:: وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ**

**د اهل ايمان نيک بختي:-** الله ﷻ چه کله د بدبختانو ذکر اوفرمائيلو نواوس د نيك بختو ذکر فرمائي چه هغه خلق کومو چه د زړه نه ايمان راوړلي وو او په خپلو اندامونو باندې ئې نيك عمل کړي وو هغوی برعکس دی د هغه خلقو چا چه د الله ﷻ د آياتونو کفر اوکړو.دلته په دې خبره باندې رڼا اچولې شي چه ايمان اوعمل څه ګران اوسخت کارنه دې بلکه ډيرآسان دی.ارشاددې چه مونږکوم شرعي مکلفيتو نه مقررکړی دی اوايمان او نيك عمل کوم چه مو فرض ګرځولي دې دا د انسان د وسعت نه بهر نه دې مونږ چاته د هغه د طاقت نه زيات تکليف نه ورکوو. هم دغه خلق جنتيان دی.

**په جنت کښې به کينه او بغض نه وي:-** اود اهل ايمان په زړونوکښې که څه بغض او کينه وی هغه به مونږ اوباسو([1])لکه چه رسول الله ﷺ فرمائيلي مؤمن چه کله د اور نه خلاصې بيامومي نو هغه به د جنت او دوزخ په مينځ کښې په پل باندې راحصارکړې شي بيا به دهغه ظلمونه په بحث کښې راوستلې شي کوم چه په دنياکښې دهغوی په مينځ کښې وو، تر دې چه کله د هغه ظلمونه او د هغه حسد او بغض د هغه د زړه نه پاك اوصفا کړې شي نو بيا به هغه له د جنت لار ورکولي شي اوپه الله ﷻ قسم چه هغه ته به دجنت منزل دخپل ددنيا دکور نه ډير آسان معلوم شي([2])جنتيان چه کله جنت ته ليږلې شي نو هغوی به د جنت دروازې سره يوه ونه اووينى د کومې لاندې چه به دوه چينې بهيږی د يوې نه به اوبه اوڅکى نود هغه په زړه کښې چه کومه کينه وی اوبه وينځلې شي هم دغه شراب طهور دی او په دويمه چينه به لامبى نود جنت په شان تازه والې به د هغه په مخ باندې راشي بيا به نه وينبته خوريږی نه به د رانجو ضرورت وی. بيابه دا خلق ډلې ډلې د جنت طرف ته روان کړې شي([3])حضرت علي رضي الله عنه فرمائيل چه زه اميد کوم چه زه عثمان رضي الله عنه طلحه رضي الله عنه اوزبير رضي الله عنه به ان شاء الله هم د دغه خلقو نه يو د چا په زړونوکښې چه کينه وه خودتولو سينه به د کينې نه صفا کړې شي.حضرت علي رضي الله عنه فرمائي په الله ﷻ قسم په مونږ کښې د بدر والا هم دی اوهم د هغوی په شان کښې دا آيت نازل شوی دې. دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه حضور ﷺ فرمائيلي چه هر جنتي ته به د دوزخ کور خودلې شي هغه به وائي چه که الله ﷻ زما هدايت نه فرمائيلو نو دا ځائ به زما ځائ وود الله ﷻ ډير شکر دې. اوهردوزخي ته به د هغه کور په جنت کښې خودلې کيږی هغه به وائي چه افسوس الله ﷻ ماته هم هدايت کړې وې نودا به اوس زما کور وې. دغه شان به په هغه باندې ارمان راخور وی ([4])او چه کله دې مؤمنانوته دجنت زيری ملاوښې نو ورته به وئيلې شي چه داجنت ستاسو دنيکو اعمالو په تنيجه کښې دانعام په توګه دې په تاسو د الله ﷻ رحمت دې تاسو جنت ته داخل کړې شونی د خپلو اعمال په اندازه خپل ځائ جوړکړنی اودا هر څه د الله ﷻ د رحمت سبب دې. په بخاری او مسلم شريف کښې دی چه حضور ﷺ فرمائي په تاسو کښې دې هر يو ته دا معلومه وی چه د چا عمل هغه جنت ته نشی رسولې نو خلقو اووئيل يارسول الله ﷺ! تاسوهم نه، حضور ﷺ اوفرمائيل او زه هم نه تر کومې چه د الله ﷻ رحمت ماسره هم شامل حال نه وی.([5])

---

[1]) ۶/الانعام: ۱۵۲-۱۵۳.

[2]) صحيح بخاری کتاب المظالم باب قصاص المظالم: ۲٤٤٠، حاکم: ۳۵٤/۲،مسندابی يعلی: ۱۱۸۶. ابن حبان: ۷٤۳٤.

[3]) الطبری: ٤۳۹/۱۲.

[4]) السنن الکبری للنسائی: ۱۱٤۵٤، حاکم: ٤۳۵/۲، وحسن عند احمد: ۵٤٠/۲ فالحديث حسن.

[5]) صحيح بخاری کتاب المرضی باب تمنی المريض الموت: ۵۶۷۳ صحيح مسلم: ۲۸۱۶. احمد: ۲۶٤/۲. ابن حبان: ۳٤۸.

وَنَادَىٰ أَصْحَٰبُ الْجَنَّةِ أَصْحَٰبَ النَّارِ أَن قَدْ وَجَدْنَا

او اواز به اوکړی | خاوندان دجنت | خلقو د وورته | چي په تحقیق سره | بیا اوموندو مونږ

اوبیا به جنتیان دوزخیانوته اوازاوکړی | چي مونږ خو دخپل

مَا وَعَدَنَا رَبُّنَا حَقًّا فَهَلْ وَجَدتُّم مَّا

هغه څیزاچي وعده کړی وه زمونږ سره | رب زمونږه | صحیح حقه | نو ایا | اوموندو تاسو(هم) | هغه

رب تولي وعدي پوره پوره بیا اوموندي | نو تاسو هم دخپل رب د (عذاب) وعدي

وَعَدَ رَبُّكُمْ حَقًّا ۖ قَالُوا نَعَمْ ۚ فَأَذَّنَ

چي وعده کړی وه | رب ستاسو | حقه | اوبه وانی هغوی | هو | نو آواز به اوکړی |

پوره پوره بیاموندي که نه ؟ | هغوی به اووانی چي او | نو د دوی ترمینځه به یو

مُؤَذِّنٌ بَيْنَهُمْ أَن لَّعْنَةُ اللَّهِ عَلَى الظَّٰلِمِينَ ۝ الَّذِينَ

یو آواز کونکي | په منځ ددوی کښي | چي لعنت | دالله دوی | په ظالمانوباندي | هغه ظالمان

آواز کونکي آوازاوکړی | چي په ظالمانوباندي دي دالله ﷻ لعنت وی | هغه ظالمان

يَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ وَيَبْغُونَهَا عِوَجًا وَهُم

چي منع کول ني خلق | دلاري د الله نه | اولټوونی په دغه لارکښی | کوږوالي | اوهغوی

چي خلق به نی دالله ﷻ دلاري نه منع کول | اوپه هغي کښي به کوږولي لټولو | اوهغوی

بِالْآخِرَةِ كَٰفِرُونَ ۝

په آخرت باندي | کافران وو |

د آخرت نه هم منکر وو |

**قوله تعالی:: وَنَادَىٰ أَصْحَٰبُ الْجَنَّةِ أَصْحَٰبَ النَّارِ.**

**د جنتیانود دوزخیانونه سوال:**-دوزخیان دوزخ ته د تلونه پس دسپکاوی بي عزتنی اورټنې په توګه هغوی ته خطاب کولي شي چه جنتیان به دوزخیانوته وانی زمونږ رب چه مونږ سره کومه وعده کړې وه هغه نی په حق سره ثابته کړه. آیا ستاسو هم د حق دې وعدې سره مخ شوې ووکومه چه رب تاسو سره کړې وه. دلته حرف "ان" د محذوف قول تفسیرکوی او "قد" د تحقیق دپاره راغلې دې.نوهغه کافر به جواب ورکوی چه او.لکه چه په سورة صافات کښې حق تعالی فرمائیلی اودهغه سړې باره کښې خبر ورکړې دې چه په ژوندکښې د یو کافر دوست وو هغه مؤمن چه کله کافر دوست په دوزخ کښې ورتونبلې اووینی نو وانی به په اللهﷻ قسم دې ده خو به زه په دنیا کښې په خپله غلطه لار خودلو نن هلاك کړې وم.که د اللهﷻ کرم شامل حال نه وونو نن به زه هم ده سره وم. دې کافربه ونیل چه بس هم دا دی چه مړه شو نو بس مړه شو بیا به نه شو اوچتولې او نه به څه عذاب وی[1] فرښتې به اوس دهغه غوږونه کولاؤ کړی اووانی به چه اوګوره داهغه دوزخ دې د کوم نه چه تا انکارکولو.دا څه جادونه دې چه تاته نه ښکاری.راشه دوزخ ته داخل شه.که غواړې اوکه نه صبربه کول وی.ته به د خپلو کړو بدله

[1] ۳۷/الصفات:۵۵،۵۸.

بیامومې(۱)

**د رسول کریم ﷺ قتل شوؤ کافرانو ته اواز:**-دغه شان حضورﷺ په بدر کښې قتل شوې کافرانو ته خطاب کولوسره فرمانیلې وو اې ابوجهل بن هشام، اې عتبه بن ربیعه، اې شیبه بن ربیعه او نورو قتل شوو د قریشو د سردارانو نومونه اخستو سره اوفرمانیل ولې چه تاسو سره رب کومه وعده کړې وه پوره نې کړه که نه. ماسره خو چه الله ﷻ کومه وعده کړې وه هغه پوره شوه. حضرت عمر ؓ عرض اوکړو یارسول الله ﷺ تاسو مړو ته خطاب فرمانې نو حضور ﷺ اوفرمانیل په الله ﷻ قسم چه هغوی تاسونه کم نه اوری خو جواب نه شی ورکولې.(۲)

بیا د الله ﷻ ارشاد دې چه یو آواز کونکې به آواز کوی چه په ظالمانو باندې د الله ﷻ لعنت دې بیائی اوفرمانیل چه دا هغه خلق دی چه د نیغې لار نه به نې خلق منع کول. د انبیاء د شریعت د لارې نه به نې خلق اړول چه خلق په کږه لار لاړشی او د پیغمبر ﷺ تابعداری اونه کړی. دوی په آخرت کښې د الله ﷻ نه مخامخ کیدونه منکروو ځکه چه د دوی سره د حساب د ورځې هیڅ ویره نه وه. دا ډیر خراب خلق وو.

| | | |
|---|---|---|
| وَبَيْنَهُمَا | حِجَابٌ | وَعَلَى الْأَعْرَافِ |
| اوپه منځ ددواړوډلو کښې به | پرده وی | اوپه اعراف باندې به |
| اوددې دواړو ډلو ترمینځه بۀ پرده وی | | اودهغې په اوچت سر(اعراف) به |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| رِجَالٌ | يَعْرِفُونَ | كُلًّا | بِسِيمٰهُمْ | وَنَادَوْا | أَصْحٰبَ |
| څه خلق وی | اچې پیژنی به | هریو | اپه نښو دهغوئ سره | اوآواز به اوکړی هغوئ | ملګرو |
| خنې خلق وی | چې هریو(جنتی او دوزخی) به خپلو خپلو نښو سره پیژنی | | | او جنتیانو ته به | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الْجَنَّةِ | أَنْ سَلٰمٌ | عَلَيْكُمْ | لَمْ يَدْخُلُوهَا | وَهُمْ |
| دجنت ته | چې سلامتیا دوی | اپه تاسو باندې | اداخلق نه به وی داخل شوی جنت ته | اوهغوی به |
| اوازاوکړی | چې په تاسودې سلامتیا وی | | پخپله به جنت ته داخل شوی نه وی | خو |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَطْمَعُونَ ۝ | وَإِذَا | صُرِفَتْ | أَبْصَارُهُمْ | تِلْقَاءَ | أَصْحٰبِ النَّارِ |
| طمع لری دجنت | اوهرکله چې | اوګرځی | استرګې دهغوئ | په طرف | دملګرودوور |
| امیدوار به ناست وی | اوڅه وخت چه دهغوئ سترګې دوزخیانو ته اوګرځی | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَالُوا | رَبَّنَا | لَا تَجْعَلْنَا | مَعَ | الْقَوْمِ | الظّٰلِمِينَ ۝ |
| اوبه وانی | اے ربه زمونږه | مۀ یوځائې کوه مونږه | سره | دقوم | ظالم |
| نوائی به چې ائې زمونږ ربه ! مونږ د ظالمانوډلې دملګرتیا نه اوساتې ! | | | | | |

**قوله تعالی:: وَعَلَى الْأَعْرَافِ رِجَالٌ**

**اصحاب اعراف اود هغوی انجام:**-د جنتیانو دوزخیانو ته د خطاب نه پس فرمانی ارشاد دې چه د دوزخ او جنت په مینځ کښې به یوه پرده وی چه دوزخیان به جنت ته د تلونه منع کوی. لکه چه فرمانی د دې دواړو په مینځ کښې به یو دیوال قائم کړې شوې وی د کوم دننه طرف ته چه یوه دروازه ده په هغې

---

(۱) ۵۲/الطور:۱۶،۱۴.

(۲) صحیح بخاری کتاب المغازی باب قتل ابی جهل:۳۹۷۶، صحیح مسلم:۲۸۷۴، ابن حبان:۶۴۹۸.



کښې رحمت دی اوبهر طرفته ئې عذاب دی[۱] هم دا اعراف دی دکوم په نسبت چه فرمائي چه په اعراف باندې به خلق وي. سدی رحمه الله نه روايت دی چه د الله ﷻ قول "د هغوی په مينځ کښې به پرده وي" کښې "پرده" هم دغه اعراف دی.

اعراف والا کوم خلق دی؟. ابن جرير رحمه الله وائي چه اعراف دعرف جمع ده،هر يومرتفع ځائ ته عرف وائي.دچرگ چارخولك ته هم په دې وجه اعراف وائي. ابن عباس رضي الله عنه فرمائي چه د جنت او دوزخ په مينځ کښې يوه غونډئ ده، دلته هم خلق رامنع کړې شوی دی داگناهگار دی. سدی رحمه الله وائي چه دا اعراف نوم په دې وجه کيخودې شوې دې چه د دې ځائ خلق به خپل خلق پيژني. د مفسرينو تعبيرونه د اصحاب اعراف باره کښې مختلف دی. تقريبا د ټولو هم يوه معنی ده. يعنی هغه داسې خلق دی چه د هغوی نيکئی او بدئی يوشان يعنی برابرې دی. د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړې شو چه د چا نيکئی او بدئی برابروی هغوی به چرته وي؟ نو حضور ﷺ اوفرمائيل هم دغه خلق اصحاب اعراف دی. دوی خو به جنت ته نه شي داخلولې خودوی ته به د جنت طمع خامخا وي.بيا هم د دې قسم په يوسوال باندې حضور ﷺ اوفرمائيل چه دا اصحاب اعراف هغه خلق دی چه د والدينو د اجازت نه بغير د الله ﷻ په لارکښې دجهاد دپاره اوځي او بيا قتل شوی وي د جنت د داخليدلونه خو هغوی په دې وجه رامنع کړې شو چه د خپلو والدينوخلاف ئې کړی وو اود دوزخ نه په دې وجه بچ شو چه د الله ﷻ په لارکښې شهيد شوی وو[۲] اويه يوحديث کښې فرمائيلې شوی دی دا هغه خلق دی چه د چا نيکئی او بدئی برابر برابر وي. بدو خو جنت ته دوی د تلونه منع کړل او نيکو دوزخ ته دتلو نه دوی منع اوساتل، نو اوس دا خلق هم دې ديوال سره حصارشوی دی اود الله ﷻ د فيصلې کولو پورې به دلته حصار وي. اوس چه کله د هغوی نظر د دوزخ والا طرف ته شي نو دوی به وائي چه اې ربه د دې ظالمانونه خو مونږ مه جوړوې. دوی به دغه شان دعاگانې غواړی چه الله ﷻ به هغوی ته فرمائي ښه ده جنت ته لاړشئ ما تاسو اوبښلئ.دقيامت په ورځ به الله ﷻ دخلقو حساب اخلې د چا چه يوه نيکي هم زياته شي هغه به جنت ته داخلولې شي اوکه د چا يوه بدی هم زياته شي هغه ته به د دوزخ لارخودلې شي بيا حضور﴿ فَأَمَّا مَن ثَقُلَتۡ مَوَٰزِينُهُۥ﴾آيت اولوستلو.

بيا فرمائي چه ميزان يعنی تله به د يوې دانې په فرق سره هم ښکته کيږی اونيکئ او بدئی برابرکيږی نو هغوی به پل باندې اودرولې شي هغه اهل جنت او اهل نار پيژني.اهل جنت ته به کتلو به سلام کوی او گس طرف ته به دوزخيان ښکاری نو وائي به چه اې الله د دې خلقو نه مونږ مه جوړوه. د نيکو والا خلقو مخې ته به يو نور وی د کوم په لارخودنه کښې به هغوی ځي دغه شان د هريو نيك سړی او ښځې په وړاندې به نوروی کله چه پل صراط ته اورسی دا نور به د هغه خلقو نه واخستلې شي چه منافق وي. ټول جنتيان به دې حال کښې منافقانوته گوری نووائي به اې الله زمونږ دانورقائم اوساتې خود اصحاب اعراف نور به د هغوی مخې ته وی او د هغوی نه به لرې کيږی نه. دغه وخت به الله ﷻ فرمائي چه هغوی جنتيان خو نه دی خو د جنت طمع کوی.

بنده چه کله څه نيکی کوی نو لس نيکئ ليکلې کيږی اوچه کله بدی کوی نوهم يوه بدی ليکلې کيږی. هغه سړې بدنصيب دې چه د چا اکائی (يعنی يوه گناه) چه په دهايانو(يعنی لسو نيکو) باندې غالب راشي.چه کله الله ﷻ هغوی معاف کړی نو يو نهر طرف ته به ئې اوليږی دې ته نهر حيات وائي د کوم غاړې چه دسرو زرو دی په کومو چه مرغلرې اوهيرې ټك وهلې شوی دی دهغې خاوره مشك دی داخلق به په دې نهرکښې لامبولې شي نودهغوی رنگ به صحيح شي اود هغوی په سټونو به سپينې او

---

[۱]) ۵۷/الحديد:۱۳.

[۲]) الطبری:۸/۱۳۹، الامالی:۸/۱۶۲.

روښانه علامې راښکاره شي. هم په دې نښنو سره به د هغوی اهل اعرافونه کېدل معلومېږي. کله چه د هغوی رنګ ښانسته شي نو الله ﷻ به هغوی ته خطاب فرمائي چه اوغواړئ څه غواړئ؟ هغوی به خپل خواهش ښکاره کړي دهغوی امیدونه به پوره کولې شي. او وئیلې کېږي به چه ستاسو د درخواست نه به اویا درجې زیات ملاویږي هغوی به د جنت طرف ته روانولې شي د هغوی نوم به وی مساکین اهل جنت. حضور ﷺ اوفرمائیل چه د ټولو نه په آخره کښې به د هغوی فیصله کیږي. د ټولو بندګانو د فیصلې کیدو نه پس به الله ﷻ فرمائي اې د اعراف صاحبانو! ستاسو نیکو تاسو د دوزخ نه بچ کړئ خو تاسو ئې د جنت حقداران ثابت نه کړې شوئي. اوس تاسو زما آزاد کړې شوی شئ د جنت نه فائده واخلئ څنګه چه هم تاسو غواړئ.(۱)

اودا هم وئیلې شوی دی دا اهل اعراف هغه خلق دی کوم چه ناجائز پیدا شوی دی حضور ﷺ فرمائیلی چه د پیریانو مؤمنانو دپاره هم ثواب او عذاب شته. خلقو د هغوی د ثواب او د هغوی دمؤمنینو باره کښې تپوس اوکړو نوونی فرمائیل چه داټول صاحب اعراف دی. دوی به په جنت کښې دامت محمدیه ﷺ سره نه وی. تپوس اوشو چه اعراف څه څیز دې؟ وئی فرمائیل چه جنت سره نیزدې یو دیوال دې په کوم کښې چه نهرونه هم دی (۲) ونې او میوې هم دی.

مجاهد رحمه الله فرمائي چه صاحب اعراف هغه نیکان خلق دی چه فقهاء او علماء دی.﴿ وَبَيْنَهُمَا حِجَابٌ ۚ وَعَلَى الْأَعْرَافِ رِجَالٌ ﴾باره کښې ابومجلز رحمه الله وائي چه کوم خلق په اعراف باندې متعین وی هغه به فرښتې وی چه دوزخیان او جنتیان به پیژنی اوجنتیانوته به آواز کوی چه السلام علیکم،هغوی به په جنت کښې خونه وی خود جنت غوښتنه به کوی اود دوزخیانو په کتلو سره به د دوزخ نه پناه غواړي. اصحاب اعراف به داسې خلقو ته آوازونه کوی کوم چه به هغوی د روښانه تندی نه پیژنی. او وائي به چه تاسو به د الله ﷻ دحکم نه غرور او کبر نه کولو. دا ګناهګار خلق به جنتیان خو نه شي کیدې چا چه د الله ﷻ رحمت اونه موندلو. او چه کله جنتیان جنت ته داخل کړې شي نو وائي به چه ځئ جنت ته، اوس به نه په تاسو څه ویره وی اونه به غم او خفګان سره مخ کیږئ. دا قول ډیر غریب دې او د سیاق عبارت نه هم ظاهرا مخالف دې اوهم د جمهورو قول مقدم دې ځکه چه د آیت د ظاهری الفاظو مطابق دې.

د حضرت مجاهد رحمه الله قول هم کوم چه پورته بیان شود غرابت نه خالي نه دې. قرطبی رحمه الله د دې باره کښې دولس قولونه نقل کړی دی. صالحان انبیاء او ملائکې وغیره دا جنتیان د هغوی د مخ د رونق او سپین والي نه اودوزخیان د هغوی د مخونو د توروالی نه پیژنی.د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه الله ﷻ هغوی ته دا منزلت په دې وجه ورا وبښلو دې د پاره چه هغوی ته معلومه شي چه جنتیان څوک دی او دوزخیان څوک. هغوی به دوزخیان د هغوی د مخونو د توروالی نه پیژنی اود الله ﷻ نه به پناه غوښتلو سره وائي چه الله ﷻ مونږ د دې ظالمانو نه مه جوړه وه. هم په دې حالت کښې به هغوی جنتیانوته سلام کوی او پخپله خو جنت ته داخل نه شو خو امید لری او ان شاء الله داخلیږی به. حسن بصری رحمه الله وائي چه دا طمع د هغوی په زړه کښې صرف د دې کرامت او مهربانئی په سبب ده چه کومه الله ﷻ د هغوی په حال باندې شامل ساتی او چه هغوی کوم امید لری د هغې نه الله ﷻ هغوی خبر هم کړل یعنی وائي چه د دوزخیانو په کتلو سره به وائي الله ﷻ د دوی نه مو بچ کړه. عکرمه رحمه الله وائي چه هغوی به دوزخیانوطرف ته ګوری نود هغوی مخونه به اوسوزی اوچه کله د جنتیانو طرف ته ګوری نو دا خبره به خی.

۱) دا روایت مرسل دې.

۲) دامتروك روایت دې المیزان: ۳۴۹/۴ رقم: ۹۶۱۲.

وَنَادٰۤى اَصۡحٰبُ الۡاَعۡرَافِ رِجَالًا يَّعۡرِفُوۡنَهُمۡ

او آواز به اوکړي | داعراف خلق | هغه خلقو ته | چې اوبه ئې پیژني هغوئ

اوداعراف خلق به خیني(مشرانواوسردارانو) خلقو ته آوازاوکړي | چې په هغوئ به په

بِسِيۡمٰهُمۡ قَالُوۡا مَاۤ اَغۡنٰى عَنۡكُمۡ جَمۡعُكُمۡ

په نښنودهغوئ سره|اوبه وائي|اونۀ کړو دفع عذاب |استاسونه | ډلې ستاسو

نښنواوپیژني | ورته بۀ اووائي چې ستاسو هغه ډلې او ستاسو

وَمَا كُنۡتُمۡ تَسۡتَكۡبِرُوۡنَ۝ اَهٰۤؤُلَاۤءِ الَّذِيۡنَ

اونۀ هغې سازو سامان| چې وئ تاسو| چې لوئ به ګڼړلوتاسو| آیا داکسان | هغه دي

خان ته لوئي کتل خو هیڅ پکار رانغلل | آیا دا هغه جنتیان دي | چه تاسو بۀ د دوی په باره کښې

اَقۡسَمۡتُمۡ لَا يَنَالُهُمُ اللّٰهُ بِرَحۡمَةٍ ؕ اُدۡخُلُوا الۡجَنَّةَ

چې قسمونه به خوړل تاسو| چې نۀ به رسوی دوئ ته | الله | رحمت اچې داخل شئ| جنت ته

قسمونه کول | چې الله ﷻ به هیڅکله هیڅ کله په اونه رحمیږی | (نن هغوئ ته اوئیلې شو) چې

لَا خَوۡفٌ عَلَيۡكُمۡ وَلَاۤ اَنۡتُمۡ تَحۡزَنُوۡنَ۝

نۀ به وی یره | په تاسو باندې| اونۀ به تاسو | غمژن کیږئ |

جنت ته داخل شئ | په تاسو باندې نه څه ویره شته | او نه به تاسو غمژن شئ |

قوله‌تعالي:: قَالُوۡا مَاۤ اَغۡنٰى عَنۡكُمۡ جَمۡعُكُمۡ

**د قیامت په ورځ د حضورﷺ شفاعت کافرانو ته هیڅ فائده نه رسوی**:-الله ﷻ د دې ملامتیا ذکر فرمائي کومه چه به دقیامت په ورځ اهل اعراف دمشرکانود سردارانوبه دوزخ کښې لیدلو سره کوی چه ستاسو زیاتوالی تاسوله هیڅ فائده درنه کړه. اونه ستاسو سرکشنی تاسوله د الله ﷻ د عذاب نه نفعه درکړه او تاسو د الله ﷻ د عذاب مستحق اوګرخولې شوئی. هم دې مشرکانو به د اهل اعراف باره کښې وئیل او قسمونه به ئې خوړل چه دوی ته به د الله ﷻ رحمت چرې هم نه ملاویږی. اوس به الله ﷻ اهل اعراف ته فرمائي چه ځئ جنت ته داخل شئ تاسو باندې نه څه ویره شته او نه څه غم.حضرت حذیفه ؓ فرمائي چه اصحاب اعراف هغه خلق دی چه د چا اعمال برابر وی یعنی دومره نه دی چه جنت ته به لاړشي اونه به داسې وی چه دوزخ کښې اوغورزولې شی. هغوی به اعراف کښې دننه اوسیدو سره دوزخیان او جنتیان د هغوی د مخونونه پیژني.

**په قیامت کښې د رسول کریم شفاعت** بیا چه دقیامت په ورځ کله د بندګانو فیصلې اوشی نو الله ﷻ به د شفاعت کولو اجازت ورکړی. خلق به آدم ؑ له راشی او وائی به ته زمونږ پلارئی الله ﷻ ته زمونږ شفاعت اوکړه. هغه به وائی چه تاسو ته معلومه ده چه څوك هم الله ﷻ زما بغیرپخپل لاس نه دی جوړکړی او په هغه کښې خاص خپل روح پوك وهلې وی او آیا ملائکو زما نه علاوه بل چاته هم سجده کړې ده؟ خلق به وائی نه. آدم ؑ به وائی چه بیا هم زه د الله ﷻ د ذات نه واقف نه یم زه خو د شفاعت طاقت نه لرم. تاسو زما ځوئ ابراهیم ؑ له لاړشئ خلق به حضرت ابراهیم ؑ له راشی اود شفاعت

غوښتونکی به شی هغه به وائی آیا الله ﷻ زما نه بغیر بل څوك خپل خلیل گرځولې وو؟ او زما نه بغیر یو قوم خپل پیغمبر په اُورکښې غورزولې وو خلق به وائی نه. حضرت ابراهیم ﷺ به وائی زه شفاعت نه شم کولې. د الله ﷻ د ذات د کنهې نه واقف نه یم. تاسو موسی ﷺ له لاړشئی نو موسی ﷺ به وائی زما نه بغیر الله ﷻ چاسره نیغ په نیغه خبرې کړی دی خو بیا هم زه د الله ﷻ د حقیقت نه خبرنه یم. تاسو عیسی ﷺ له لاړشئی.

عیسی ﷺ به وائی آیا زمانه بغیر الله ﷻ څوك بغیرد پلارنه پیداکړی؟ او بل چا برگ او جذامی غوندې لاعلاجه مریض صحیح کړی. اوزما نه بغیر چا مړی ژوندی کړی نو هغوی به وائی چه نه، خو زه بیا هم د الله ﷻ د ذات نه واقف نه یم. ما ته خپل فکر دې. تاسو محمد ﷺ له لاړشئی خلق به ماله راشی زه به په سینه لاس وهلو سره اووایم زه به ستاسو سفارش کوم. بیا به زه د الله ﷻ د عرش په وړاندې راشم اوبه دریږم. زما ژبه به د الله ﷻ په تعریف کښې داسې کولاوشی چه چرې به هم تاسو داسې تعریف نه وی اوریدلې. بیا به زه په سجده کښې پریوزم.

الله ﷻ به فرمائی اې محمد ﷺ اسر اوچت کړه څه غواړې شفاعت کوې نو ستا شفاعت به قبلولې شی. زه به سراوچتوم بیا به د الله ﷻ حمداو ثناء کوم. بیابه په سجده کښې پریوځم. بیا به ونیلې شی چه پاسه درخواست کوه. زه به سر اوچت کړم او عرض به اوکړم یا ربه زما امت اوبښه. الله ﷻ به فرمائی اومې ښښلو. دې کیفیت ته په کتوباندې به یو داسې لیرلې شوې نبی یا څوك فرښته نه وی چه نه به پخښیږی او هم دغه مقام محمود دې.

اوس به زه ټولو امتیانوسره جنت طرف ته ځم. د جنت دروازه به زما د پاره کولاویږی. اوس به دا ټول امتیان به د نهر طرف ته بوتلې شی کوم ته چه نهر حیات وائی د کوم دواړه غاړې چه به په مرغلرو هیرو او زرو سره جوړې شوی وی. د دې خاورې به مشك وی د دې کاڼی به د یاقوتووی. په دې نهرکښې به دا خلق لامبی نو د هغوی رنگ به د جنتیانوپه شان شی. اود هغوی نه به د جنت خوشبوئی راپیداشی او داسې به معلومیږی لکه پرقیدونکی ستوری خود هغوی په سینوباندې به روښانه نښې وی د کوم نه چه به پیژندې شی. هم دوی ته به مساکین اهل الجنة ونیلې شی.[1]

| وَنَادَىٰٓ | أَصۡحَٰبُ ٱلنَّارِ | أَصۡحَٰبَ ٱلۡجَنَّةِ | أَنۡ أَفِيضُواْ | عَلَيۡنَا | مِنَ ٱلۡمَآءِ | أَوۡ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوآواز به اوکړی | ملگری د وور | ملگرو دجنت ته | چی راتوئ کړئ | په مونږ باندې | داوبو نه | یا |
| اوآواز به اوکړی دوزخیان جنتیانو ته چې مونږ ته لږې اوبه راکړئی \| او یا راته د هغه رزق نه څه راکړئ | | | | | | |

| مِمَّا | رَزَقَكُمُ | ٱللَّهُۚ | قَالُوٓاْ | إِنَّ ٱللَّهَ | حَرَّمَهُمَا |
|---|---|---|---|---|---|
| دهغې نه چې | درکړې دې تاسوته | الله | اوبه وائی هغوئ | چې بیشکه الله | حرام کړی دی دا دواړه |
| کوم چه الله ﷻ تاسو ته الله درکړې دې \| هغوئ به جواب کښې اووائی چې الله ﷻ دا دواړو په | | | | | |

| عَلَى ٱلۡكَٰفِرِينَ | ٱلَّذِينَ | ٱتَّخَذُواْ | دِينَهُمۡ | لَهۡوٗا | وَلَعِبٗا |
|---|---|---|---|---|---|
| په کافرانو باند | هغه | چې نیولې وو هغوئ | دین خپل | عبث کار | اولوبې |
| کافرانو حرام کړی دی \| چې چادخپل دین نه لوبه توقه جوړه کړې وه \| | | | | | |

---

[1] ) دا روایت خو ملاونه شو ولې دَ دې معنی بل روایت صحیح مسلم کتاب الایمان باب ادنی اهل الجنة منزلة فیها: ۱۹۴-۱۹۵ کښې موجود دې.

| كَمَا | نَنسٰهُمْ | فَالْيَوْمَ | الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا | وَّغَرَّتْهُمُ |
|---|---|---|---|---|
| لكه څنګه چې | نونن ورځ به مونږه هیر کړو دوی | | دنیا | اودوکه کړي وو هغوی ژوند د |
| اوددنیا ژوند په دهوکه کښې اچولي وو نونن به ني مونږ هم داشان هیر کړو لکه څنګه چې | | | | |

| بِاٰيٰتِنَا | وَمَا كَانُوْا | هٰذَا | يَوْمِهِمْ | لِقَاءَ | نَسُوْا |
|---|---|---|---|---|---|
| په آیتونوزمونږ | اولکه څنګه چې وو دوی | دورځي ددوی چې داده | | ملاقات | هیرکړي وو دوی |
| هغوی ددې ورځي ملاقات هیر کړي وو او زمونږ د آیتونو نه به ني | | | | | |
| يَجْحَدُوْنَ۝ | | | | | |
| چې انکاربه ني کولو | | | | | |
| انکار کولو | | | | | |

**قوله تعالی:: وَنَادٰٓى اَصْحٰبُ النَّارِ اَصْحٰبَ الْجَنَّةِ**

**ددوزخیانو فریاد جنتیانوته:-** الله ﷻ دوزخیانوته ذلت ښائي او بل دا چه هغوی څنګه د جنتیانونه شراب او طعام غواړي خو جنتیان به هغوی ته هیڅ هم نه ورکوی. دوزخیان به جنتیانوته وائی چه لږې شان اوبه اوخوراك مونږ ته هم راکړئی دپلار نه به خوئ یاد روز نه به روز غواړي اووائی به چه زه خو سوزیږم لږې شان اوبه راکړه. خو هغه به هم دغه جواب ورکوی چه الله ﷻ دا دواړه څیزونه په کافرانو باندې حرام کړی دی.

**د جنت هر څه په کافرانو باندې حرام دی::** ابوموسی صفار رحمه الله د ابن عباس رضی الله عنه نه تپوس اوکړو چه کومه صدقه غوره ده نو وئی وئیل چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه بهترینه صدقه اوبه دی. آیاتاسو نه دی اوریدلی چه دوزخیان به د جنتیانونه اوبه او خوراك غواړي[1] د ابوصالح رحمه الله نه روایت دی چه کله ابو طالب بیمارشو نوخلقوهغه ته اووئیل چه ته دخپل وراره په ذریعه د جنت نه یوه غونچه انګور راوغواړه کیدې شی چه د هغې په برکت ستا شفا اوشی. قاصد حضور ﷺ ته راغلو، ابوبکر صدیق رضی الله عنه حضور ﷺ سره ناست وو نو وئی وئیل چه په کافرانوباندې الله ﷻ د جنت هر څیز حرام کړی دې. [2] بیا الله ﷻ بیان فرمائی چه کافرانوڅنګه په دنیاکښې مذهب او دین د لوبو یو څیز جوړکړې دې او په دنیاکښې چه څنګه په هیره کښې پراته دی اوددنیا په ښائست او مزوکښې څنګه اخته دی. اود آخرت د سودا کولونه څنګه غافل دی. بیا فرمائی چه نن مونږ هم دوی هیررو لکه څنګه چه دوی دا د آخرت ورځ هیره کړې وه. اود هیرولو لفظ د معاملې او دبدلې په توګه دې ګنی الله ﷻ څه څیز هیروی نه. لکه چه فرمائی ﴿ فِيْ كِتٰبٍ ۚ لَا يَضِلُّ رَبِّيْ وَلَا يَنْسَى ﴾ دلته مقصد صرف ﴿مقابلة﴾ خبره کول دی. لکه چه فرمائی ﴿نَسُوا اللّٰهَ فَنَسِيَهُمْ﴾ او﴿ كَذٰلِكَ اَتَتْكَ اٰيٰتُنَا فَنَسِيْتَهَا ۚ وَكَذٰلِكَ الْيَوْمَ تُنْسٰى ﴾ او﴿ الْيَوْمَ نَنْسٰىكُمْ كَمَا نَسِيْتُمْ لِقَاءَ يَوْمِكُمْ هٰذَا﴾ ابن عباس رضی الله عنه فرمائی الله ﷻ هغوی سره دخیر معامله کول هیرکړې دی اوهغوی ته سزا ورکول ني نه دی هیرکړی.

په حدیث شریف کښې دی چه الله ﷻ به د قیامت په ورځ بنده ته فرمائی آیا ماتاته ښځه بچی نه وو درکړی، او په تاباندې مې انعام اواکرام نه وو کړې او آیا اوښ اس هاتهی او خدمت ګارمې نه وو درکړې او آیا تا به سرداری او افسری نه کوله؟ بنده به وائی چه او یا الله ﷻ تا هرڅه راکړی وو. نو بیا

---

[1] ) المعجم الاوسط:۱۰۱۵، مسندابی یعلی:۲۶۷۳.
[2] ) داروایت ضعیف دې.

به فرمانی چه ستا دا یقین وو چه ماته به مخامخ کیږې، بنده به وائی یا الله ﷻ زما دا یقین نه وو الله ﷻ به بیا فرمائی څنګه چه تا زه هیر کړې ووم دغه شان نن زه هم تا هیروم.([1])

| بِكِتٰبٍ | جِئْنٰهُمْ | وَلَقَدْ |
|---|---|---|
| ایو داسي كتاب | اراوړی دي مونږ دوی ته | او خامخا په تحقيق سره |
| اومونږ دوی ته داسي يو كتاب راليږلي دی | | ........... |

| وَّرَحْمَةً | هُدًى | عَلٰى عِلْمٍ | فَصَّلْنٰهُ |
|---|---|---|---|
| چي لاربنودونکي دي او رحمت دی | | د علم په بنياد باندي | چي په تفصيل سره بيان كړې دي مونږ هغه |
| چي پخپل علم مونږه واضح كړې دی \| او دا (كتاب) د مومنانو دپاره د هدايت او رحمت نه ډک دی | | | |

| تَأْوِيْلَهٗ ۭ | اِلَّا | هَلْ يَنْظُرُوْنَ | يُّؤْمِنُوْنَ ۝ | لِقَوْمٍ |
|---|---|---|---|---|
| دا كتاب | چي بناني | مګر انجام دهغي ته كوم | انه كوی انتظار دوی | چي ايمان راوړی | دپاره دهغه قوم |
| اوس دوی صرف دهغي خبرو انجام ته ګوری چي كتاب بيان كړی دی (يعني عذاب) ........... | | | | |

| الَّذِيْنَ | يَقُوْلُ | تَأْوِيْلُهٗ | يَاْتِيْ | يَوْمَ |
|---|---|---|---|---|
| هغه كسان | او به وائی | انجام هغه چي ښودنه ني كوی دا كتاب | چي راشي | په كومه ورځ |
| په كومه ورځ دغه چي انجام مخي ته راشي \| نو هغه كسان كوم چه | | | | |

| رُسُلُ | قَدْ جَآءَتْ | قَبْلُ | نَسُوْهُ مِنْ |
|---|---|---|---|
| رسولان | چي په تحقيق سره راغلي ووا | د مخكښي نه | چي هير كړې ني ووډا كتاب |
| دا هير كړي وو هغوی به اووائی \| چي مونږ ته زمونږ د رب پيغمبرانو | | | |

| فَيَشْفَعُوْا | مِنْ شُفَعَآءَ | لَّنَا | فَهَلْ | بِالْحَقِّ ۚ | رَبِّنَا |
|---|---|---|---|---|---|
| چي سفارش اوكړی | دسفارشيانو نه څوک | دپاره زمونږه | نو آيا شته | دحق سره | درب زمونږه |
| حقې خبرې راوړې وې \| نو كاش چي زمونږ څوک سفارشيان وی \| چي زمونږ دپاره ني سفارش ني كړی | | | | | |

| كُنَّا | غَيْرَ الَّذِيْ | فَنَعْمَلَ | اَوْ نُرَدُّ | لَّنَآ |
|---|---|---|---|---|
| چي وو مونږه | بدل دهغه عملونه | چي عمل اوكړو | ايا واپس اوليږلي شو مونږه | دپاره زمونږه |
| وی \| ...........اويا دومره اوشوې چي مونږ واپس لاړشو \| نو هغه (بد) عمل نه بيخي جدا (نيک) عمل | | | | |

| مَّا | وَضَلَّ عَنْهُمْ | اَنْفُسَهُمْ | قَدْ خَسِرُوْآ | نَعْمَلُ ۭ |
|---|---|---|---|---|
| هغه | اوورک شو ددوی نه | خانونه خپل | په تحقيق سره په نقصان كښي واچول دوی | چي كوو به مونږه |
| بڼ اوكړو كوم چي مونږ (په دنيا كښې) كړې وو \| دوی خپل خانونه تاوانی كړی وو \| او د دوی نه به هغه | | | | |

| يَفْتَرُوْنَ ۝ ع | كَانُوْا |
|---|---|
| چي دخانه به ني جوړول | چي وو دوی |
| ټول دروغ ورک شي كوم چي به دوی جوړول | |

---

[1] صحيح مسلم كتاب الزهد باب الدنيا سجن للمؤمن وجنة للكافر: ۲۹۶۸، احمد: ۴۹۲/۲، ابن حبان: ۷۴۴۶.

قوله تعالی:: قَدْ جَآءَتْ رُسُلُ رَبِّنَا بِالْحَقِّ

**په مشرکانو د حجت پوره والې**: الله ﷻ په مشرکانوباندې حجت تمام کړې وویعنی پیغمبران نې ورلیږلي وو کتابونه نې ورلیږلي وو په کوموکښې چه ډیر کولاو کولاو دلیلونه وو لکه چه فرمائی (كِتٰبٌ اُحْكِمَتْ اٰيٰتُهٗ ثُمَّ فُصِّلَتْ مِنْ لَّدُنْ حَكِيْمٍ خَبِيْرٍ) یعنی داسې کتاب چه د هغې آیاتونه محکم دی او هره خبره نې صفا صفا بیان کړې ده اود الله ﷻ ارشاد دې (فَصَّلْنٰهُ عَلٰى عِلْمٍ) یعنی چه په کومو خبرو باندې مونږ رتړا اچولې ده هغه ښه پیژنی.لکه چه فرمائی (اَنْزَلَهٗ بِعِلْمِهٖ) ابن جریر رحمه الله وائی چه دا آیت د الله ﷻ دې قول سره تعلق ساتی چه (كِتٰبٌ اُنْزِلَ اِلَيْكَ فَلَا يَكُنْ فِيْ صَدْرِكَ حَرَجٌ مِّنْهُ) یعنی داکتاب چه په تاسو نازل کړې شوې دې دې سره دې ستاسوپه زړه کښې څه تنګی نه کیږی اوپورتنې آیت (وَلَقَدْ جِئْنٰهُمْ بِكِتٰبٍ فَصَّلْنٰهُ عَلٰى عِلْمٍ هُدًى وَّرَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ) داخبره کومه چه ابن جریر رحمه الله کړې ده دا داعتراض قابله ده خکه چه په دواړو آیاتونوکښې فصل طویل دې اوپه دې دعوی باندې څه دلیل هم نشته اودلته خو خبره صرف دومره ده چه کله نې د دې خبرې خبر ورکړو چه هغوی په آخرت کښې څه خساره او تاوان اوچتونکی دی نو بیا د دې خبرې ذکرکړې دې چه په دنیاکښې رسولان لیږل او کتاب نازلولو سره دهغوی ټول عذرونه ختم کړې شو لکه چه فرمائی (وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِيْنَ حَتّٰى نَبْعَثَ رَسُوْلًا) یعنی مونږ عذاب نه ورکوو ترکومې چه دلارخودنې د پاره رسول اونه لیږو.اوهم د دې دپاره په پورتنی آیت کښې اوفرمائیلې شو (هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّا تَاْوِيْلَهٗ) یعنی هغوی خود هغه عذاب اوبدلې جنت او دوزخ انتظارکوی د کوم وعده چه هغوی سره کړې شوې وه. مجاهد رحمه الله وائی چه د تاویل نه مراد عوض او بدله ده.

**د کافرپه قیامت کښې خواهش**.-ربیع رحمه الله وائی چه دحساب دورخې دراتلوپورې به دا عوض ملاویږی تردې چه جنتیان به جنت او دوزخیان به دوزخ ته اورسی. هغه وخت به د بدلې معامله ختمه شی اود قیامت په ورځ به داسې اوشی نو هغه خلق کومو چه نیك عمل پریخودې وو او په دنیاکښې نې هیر کړې وو نو وائی به چه د الله ﷻ رسول حق خبره راوړې وه نو آیا هغه به ستاسو د خلاصی د پاره الله ﷻ ته سفارش کوی یا کم نه کم بیا به مونږ دنیا ته اولیږی چه دا خل به مونږ د مخکینی عمل په شان عمل نه کوو.لکه چه فرمائی افسوس چه تادا خلق لیدل کوم وخت کښې چه هغوی په دوزخ کښې ورغورزولو دپاره د دوزخ په غاړه ولاړوی او وائی چه افسوس مونږ بیادنیا ته واپس کړه بیا به مونږ د قرآن تکذیب نه کوو او مؤمنان به جوړیږو بلکه خبره خو دا ده چه اوس خو دوی ته معلومه شوه چه کومه خبره د دوی په زړونوکښې پټه وه. اوکه دنیاته بیا واپس هم کړې شی نو بیا به هم هغه کوی دکوم چه ممانعت کړې شوې وی د دوی خبره دوروغ ده چه بیا به داسې نه کوو.(١)لکه چه دلته نې فرمائیلی دی چه د دوی نفسونه ډیر په خساره او تاوان کښې پریوتل او هغوی به دروغ جوړول ټول څه چه کیدل اوشو او اوس خو نې همیشه دوزخ په برخه دې. د هغوی بتان د هغوی سفارش نه شی کولې اونه هغوی د عذاب نه خلاصولې شی.

| اِنَّ رَبَّكُمُ اللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ |
| --- |
| بیشکه \| رب ستاسو \| الله دې \| هغه الله \| چې پیدا نې کړل \| اسمانونه |
| بیشکه ستاسو رب هغه ذات دې چې اسمانونه |

(١) ٦/الانعام:٢٧-٢٨.

وَالْاَرْضَ فِيْ سِتَّةِ اَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ يُغْشِي الَّيْلَ

او زمکه | په شپږو ورځو کښې | بیاني قراراونیوو | په عرش باند | خوروی | شپه

او زمکه ئې په شپږوورځو کښې پیداکړې دی | بیا په عرش برابر شو | هغه د شپې په پرده باندې

النَّهَارَ يَطْلُبُهٗ حَثِيْثًا وَّالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ

په ورځ باندې | بیا ورځ طلب کوی شپې لره | په تلوارسره | اوپیدانې کړل نمر | اوسپوږمۍ

د روڼې رنړا پټوی | په داسې طریقه چې (شپه په ورځې پسې) په تیزئ سره راځی | اونمراوسپوږمۍ

وَالنُّجُوْمَ مُسَخَّرٰتٍۭ بِاَمْرِهٖ اَلَا لَهُ الْخَلْقُ

اوستوری | چې تابع کړې شوی دی | په حکم دهغه سره | خبردار شئ | هغه لره دې ټول پیدانښ |

اوستوری (ټول) دهغه ذات دحکم تابع دی | خبرشئ چې ټول پیدا ئش د هغه ذات دې | او

وَالْاَمْرُ تَبٰرَكَ اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۵۴﴾

اوحکم کول | برکت والا دې الله | چې پالونکې | دجهانونو دې |

اوهم د هغه حکم په کښې چلیږی | الله دبرکتونو مالک دې | او دټول مخلوق پالونکې دې |

قوله‌تعالی:: خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ

**د آسمان او زمکې پیدائش**:- الله ﷻ خبر ورکوی چه الله ﷻ د زمکې او آسمان پیداکونکې دې هغه زمکه آسمان په شپږو ورځوکښې جوړکړی دی د کوم چه په قرآن کریم کښې څوځله ذکر راغلې دې هغه شپږ ورځې دادی، اتوار،پیر، نهی، چارشنبه،زیارت او جمعه. هم د جمعې په ورځ ټول مخلوق راجمع شو او هم په دغه ورځ آدم ﷺ پیداکړې شو. د ورځو باره کښې اختلاف دې چه آیا هغه ورځې د دې ورځو په شان وې لکه چه ذهن ډیر زر د دې خیال طرف ته منتقل کیږی او یا دا چه د زرو کالو والا ورځ وه. اوس پاتې شوه د هفتې ورځ نو په دې ورځ هیڅ نه دی پیداشوی، په دغه ورځ پیدائش منقطع وو. په دې وجه دې اوومې ورځ یعنی د هفتې ورځ ته یوم السبت وائی. اود سبت معنی قطع ده. د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه حضور ﷺ زما لاس اونیولو او ونی فرمائیل الله ﷻ د هفتې په ورځ زمکه پیدا کړه، د اتوار په ورځ ئې غرونه پیدا کړل،د پیرپه ورځ ونې پیداکړې بدنی او مکروهات د نهې په ورځ، نور د چارشنبې په ورځ او ټول ځناور او ژوندی ځیزونه د زیارت په ورځ او آدم ﷺ دجمعې په ورځ د مازیګر نه پس په آخری ګهنټه کښې د مازیګراو ماښام په مینځ کښې[1] په دې حدیث سره خو اووه واړه ورځې دکې ثابت شوې. اوالله ﷻ خو فرمائیلې وو چه شپږ ورځې دمصروفیت وې. په دې وجه بخاری رحمه الله د دې حدیث په صحت کښې کلام کړې دې او وائی چه دا به ابوهریره رضی الله عنه د کعب احبار نه اوریدلې وی او ونیلې به ئې وی. والله اعلم.

د دې شپږوورځو د مصروفیت نه پس هغه په عرش باندې دخپل شان مطابق کیناستو. په دې مقام باندې خلقو ډیر خپل خپل خیال زغلولې دې او ډیرسوچونه ئې کړی دی د کوم د تفصیل چه دلته هیڅ موقع نشته. مونږ د دې باره کښې صرف د سلف صالحین مسلك اختیاروو.یعنی مالك، اوزاعی، ثوری، لیث بن سعد، شافعی، احمد او اسحاق بن راهویه رحمهم الله وغیره او نوی اوزاړه ائمة المسلمین او هغه مسلك دا دې چه په دې باندې یقین اوکړنی بغیرد څه شك شبه او بغیرد دې فوری خیال ذهن ته د

[1] )صحیح مسلم کتاب صفات المنافقین باب ابتداء الخلق وخلق آدم ﷺ: ۲۷۸۹،السنن الکبری للنسائی: ۱۱۰۱۰)

اوړلو په کوم سره چه د شك عقيده په زړه کښې راځی او کوم صفات چه د اللهﷻ نه بعيد دی. غرض دا څه چه اللهﷻ فرمائيلی په دې باندې يقين اوشی او بغيرد څه خيال کولو او شك کولونه اومنلې شی او په کړو وړو کښې پرينوځی.

**د اللهﷻ تشبيه مخلوق سره ورکول کفر دې**-څکه چه اللهﷻ دڅه څيز مشابه يامماثل نه دې هغه سميع اوبصير يعنی اوريدونکې اوليدونکې دې. لکه څنګه چه مجتهدينو امامانو فرمائيلی په کومو کښې چه نعيم بن حماد الخزاعی رحمه الله هم دې کوم چه د امام بخاری رحمه الله استاد هم دې ونيلې دی چه چا اللهﷻ له په څه مخلوق سره تشبيه ورکړه هغه د کفر مرتکب شو. او اللهﷻ چه خپل ځان په کومو صفتونوسره متصف فرمائيلې دې د هغې نه ئی انکاراوکړونو کفرنی اوکړو.اللهﷻ اود هغه رسول ﷺ چه په کومو خبروسره صفت نه دې کړې دغه شان صفت کول هم دغه تشبيه ده. اوچا چه د اللهﷻ د پاره هغه صفتونه ثابت کړل د کوموصراحت چه په آيات الهی يا احاديث صحيحه کښې شوې دې اوکوم چه د اللهﷻ جلال ثابتوی اودهرقسم نقائصونه د اللهﷻ ذات بری کوی نوداسې سړې په صحيح خيال باندې دې. ارشاد دې چه هغه پټوی ورځ په شپه باندې يعنی د شپې تياره د ورځې په رڼړا سره اود ورځې رڼړا د شپې په تياره سره پټوی اودا شپه او ورځ هر يو ډير په تيزئی سره اخلې. يعنی چه داختميږی نوهغه راځی اوچه دارخصت کيږی نوهغه ډيرزرزرارسی.لکه چه فرمائی ﴿وَآيَةٌ لَّهُمُ اللَّيْلُ نَسْلَخُ مِنْهُ النَّهَارَ فَإِذَا هُم مُّظْلِمُونَ﴾يعنی دهغې دپاره پدې کښې نښې دی چه دشپې په ذريعه ورځ پټيږی اوناڅاپی تياره خوريږی او نمر د خپل قرارځائ طرف ته منډه وهی.دا د عزيز اوعليم مقررشوی اصول دی. د سپوږمئی مونږ منزلونه مقررکړی دی هغه کميږی زياتيږی ترڅو چه يوه ورځ هغه د کهجورې د وچې ښاخ په شان نرئی شی.دنمر دپاره دا ناممکن دی چه هغه دسپوږمئی نه وړاندې شی اونه شپه د ورځې نه وړاندې کيدې شی هريو په خپل مقرر دائره کښې او په خپل مدار کښې روان وی.

ددې دپاره ئی ﴿يَطْلُبُهُ حَثِيثًا وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ وَالنُّجُومَ مُسَخَّرَاتٍ بِأَمْرِهِ﴾ اوفرمائيل.بعضې شمس او قمر په نصب سره لولی اوبعضې په رفع سره اوپه دواړو صورتونوکښې معنی هم يوه ده. يعنی ټول څيزونه د هغه د تصرف لاندې اود هغه تسخير اورضا په دننه دی ددې دپاره فرمائی ﴿أَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَالْأَمْرُ﴾يعنی ملك او تصرف هم دهغه حق دې.ارشاد دې ﴿تَبَارَكَ اللَّهُ رَبُّ الْعَالَمِينَ﴾ لکه چه فرمائی ﴿تَبَارَكَ الَّذِي جَعَلَ فِي السَّمَاءِ بُرُوجًا وَجَعَلَ فِيهَا سِرَاجًا وَقَمَرًا مُّنِيرًا﴾

**پخپل عمل باندې دخپل ځان نه تعريف کولوسره د عمل ثواب ختميږی**.-رسول الله ﷺ فرمائيلی چه څوك نيك عمل اوکړی اود اللهﷻ شکر ادانه کړی بلکه خپل تعريف اوکړی هغه کفر اوکړو اود ده عمل به ختمولې شی اوکه چا دا ګمان اوکړو چه اللهﷻ بنده ته خپل حکومت او قدرت منتقل کړې دې نو هغه کفر اوکړو څکه چه فرمائی ﴿أَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَالْأَمْرُ تَبَارَكَ اللَّهُ رَبُّ الْعَالَمِينَ﴾ په دعانې ماثوره کښې دی چه داسې دعا غواړئی ﴿اللهم لك الملك كله ولك الحمد كله يرجع الامر كله اسئلك من الخير كله واعوذبك من الشر كله﴾[1]

| | اُدْعُوا | رَبَّكُمْ |
|---|---|---|
| | ا راوبلئ | ا رب خپل |
| | | ادخپل رب نه په |

[1]) احمد:۵/۳۹۶عن حذيفة ﷺ شعب الايمان ۴۴۰۰ وعن ابی سعيد ﷺ

| تَضَرُّعًا | وَّخُفْيَةً ؕ | اِنَّهٗ | لَا يُحِبُّ | الْمُعْتَدِيْنَ ۞ | وَلَا |
|---|---|---|---|---|---|
| په عاجزئ سره | اوپه پټه سره | بیشکه چې هغه | نه خوښوي | دحدنه اوړیدونکي خلق | اومه کوئ |

زاري او په پټه سوال کوئ، هغه دحد نه تیریدونکي خلق نه خوښوي او تاسو د زمکې

| تُفْسِدُوْا | فِي الْاَرْضِ | بَعْدَ | اِصْلَاحِهَا | وَادْعُوْهُ | خَوْفًا | وَّطَمَعًا ؕ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فساد | په زمکه کښې | اروستو | داصلاح دهغې نه | اوراوبلئ هغه | په یره | اوپه طمع سره |

په مخ د اصلاح نه پس (په ګناهونو سره) فسادمه کوئ او الله دویرې او طمعې په مینځ رابلئ

| اِنَّ | رَحْمَةَ اللهِ | قَرِيْبٌ | مِّنَ الْمُحْسِنِيْنَ ۞ |
|---|---|---|---|
| بیشکه | رحمت دالله | نزدې دې | نیکانو خلقو ته |

بیشکه دالله ﷻ رحمت نیکانو خلقو ته ډیر نزدې دې

**قوله تعالی: اُدْعُوْا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَّخُفْيَةً ؕ**

**په دعاکښې عاجزي او انکساري:-** الله ﷻ بندیګانوته د دعا طریقه ښائي چه په دین او دنیاکښې دهغه سبب جوړشي. فرمائي چه ډیر په اخلاص سره په پټه دعا کوه. لکه چه فرمائي رب خپل زړه کښې یاد: وه[1] خلقو به په ډیراوچت آوازسره دعاګانې غوښتلې نورسول الله ﷺ اوفرمائیل اې خلقوپخپلو نفسونو باندې رحم اوکړئی تاسو چرته کوڼ یا غائب ته آواز نه کوئي چانه چه تاسو دعا غواړئی هغه ډیر نیزدې دې او هغه اوري. ([2]) په دعا کښې تذلل او تضرع اختیار کړئی او په عاجزئی سره پټه دعا غواړئی چه د زړه خشوع درته حاصله وي. د هغه په وحدانیت باندې مو کامل یقین وي. په ریاکارئی سره په اوچت آواز سره دعا نه دی غوښتل پکار. د ریاکارئی نه د بچ کیدلو د پاره اول به خلق حافظان وو خوخلقو ته به د دې خبرې پته هم نه وه. یو سړې به ډیر فقیه عالم وو او خلق به د هغه د علم نه خبر هم نه وو. خلقو به د شپې په خپلو کورونوکښې اوږده اوږده مونځونه کول اود هغوی په کورونوکښې به میلمانه وو اوهغوی ته به پته هم نه وه. خو نن صبا مونږ داسې خلق وینو چه د عبادت د پټولو قدرت هم لرې خود همیشه د پاره په ښکاره کولو لیدلې کیږي. پخوا به چه مسلمانان په دعا کولو کښلې شو نو بغیر د څه پس پس نه به دهغوی د خلې نه آواز نه اوریدلو. ځکه چه د الله ﷻ حکم دې چه په تضرع او پټه سره دعا غواړئی. الله ﷻ د ډیر بزرګ بنده ذکر فرمائي چه هغه به هرکله خپل رب ته آواز کولو نو په ډیر رو آواز سره به نی رابللو. نو الله ﷻ د هغه داکار خوښ کړې دې اوفرمائیلی ئی دی چې ﴿اِذْ نَادٰى رَبَّهٗ نِدَآءً خَفِيًّا﴾ ([3]) آواز اوچتول ډیر مکروه دی.

**په دعا کښې دحد نه وتل نه دی پکار:-** ﴿اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِيْنَ﴾ په تفسیرکښې ابن عباس رض فرمائي دې نه مراد دا دې چه په دعاکښې د خپل حدنه زیاتې کول الله ﷻ ته خوښ نه دی. ([4]) ابومجلز رحمه الله فرمائي چه د انبیاؤ د منازلو غوښتلو دعا غواړه([5])سعد خپل خوئ اولیدلو نوداسې دعا ئی غوښتله چه یا الله! زه

---

[1] ) ۷ /الاعراف: ۲۰۵.

[2] ) صحیح بخاری کتاب الجهاد باب ما یکره من رفع الصوت فی التکبیر:۲۹۹۲، صحیح مسلم: ۲۷۰۴، احمد: ۴۰۲/۴، ابوداود: ۱۵۲۷، ترمذي: ۳۳۷۱، ابن ماجه: ۳۸۲۳، ابویعلی: ۷۲۵۲.

[3] ) سورة مریم آیت- ۳

[4] ) الطبري: ۴۸۶/۱۲.

[5] ) ایضًا.

جنت اود جنت نعمتونه اود جنت ریښمینې کپړې غواړم اود دوزخ نه پناه غواړم اود هغې د زنځیرونو او بیړونه. نو پلار ورته اوونیل چه تا د خیر غوښتو کښې هم انتها اوکړه. ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلی دی چه په نیزدې زمانه کښې به داسې خلق پیدا شي چه په دعاګو لو کښې به دحدنه زیاتیږی اوپه اودس کولو کښې به دحد نه زیاتې اوبه اچوی. اوبیا نې داآیت ﴿ اُدۡعُوۡا رَبَّکُمۡ تَضَرُّعًا وَّخُفۡیَۃً ؕ اِنَّہٗ لَا یُحِبُّ الۡمُعۡتَدِیۡنَ ﴾ اولوستلو. ستا د پاره خو صرف دومره دعا غوښتل کافی دی چه یاالله! زه تانه جنت او جنت ته نیزدې کونکې قول او عمل غواړم اودوزخ او دوزخ ته نیزدې کونکې قول او فعل نه پناه غواړم[1] عبدالله بن مغفل خپل خوئ اولیدو چه داسې دعائی غوښتله اې الله زه د جنت ښی طرف ته سپین محل غواړم. نو ونې وئیل چه اې خویه! د ا لله تعالی نه صرف د جنت سوال کوه او د دوزخ نه پناه غواړه.[2]

**په زمکه کښې د فساد کولو نه ممانعت**.-د الله ﷻ قول دې چه په دنیاکښې د امن د حالت نه پس فسادمه پیدا کوه ځکه چه د امن نه پس فساد ډیر خراب شیز دې ځکه چه کله امور په خپل حالت امن باندې روان وی اوفسادپه کښې واچولې شی نوبندیګان ډیرزیات تباه کیږی. ددې دپاره الله ﷻ د ﴿بَعۡدَ اِصۡلَاحِہَا﴾ قید اولګولو اودعا نی په عاجزنې سره د غوښتلو وئیلی. او فرمائی چه ﴿وَادۡعُوۡہُ خَوۡفًا وَّطَمَعًا ؕ﴾ یعنی د عذاب او عقاب نه اوویریږی اود الله ﷻ د نعمتونو او ثواب په طمع دعا غواړی. بیا فرمائی د الله ﷻ رحمت نیکوکاروسره نیزدې دې یعنی د هغه رحمت د نیکوکارو په انتظار دې اوکوم خلق چه د الله ﷻ دحکم تابعداری کوی اود زواجرو اومنهیاتونه منع کیږی. لکه چه فرمائی ﴿وَرَحۡمَتِیۡ وَسِعَتۡ کُلَّ شَیۡءٍ ؕ﴾ ﴿ اِنَّ رَحۡمَتَ اللّٰہِ قَرِیۡبٌ﴾ فرمائیلی دی(قریبة) نې نه دی فرمائیلی حالانکه رحمت مونث دې نو صیغه هم مونث کیدل پکار وو. د دې وجه دا ده چه رحمت د ثواب په معنی کښې واخلی د معنی په توګه نې دا مذکر اوګرځولو د دې د پاره هم چه د ربانی ذات طرف ته اضافت شوې دې د تابعدارنې په سبب نیکوکاروته د الله ﷻ د وعدو ډاډګیرنه ملاؤشوې ده اوهغوی د الله ﷻ رحمت ته نیزدې شوی دی.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | وَهُوَ | الَّذِیۡ |
| | | | | | اوهغه | هغه ذات دې |
| | | | | | او الله ﷻ هغه ذات دې | |
| یُرۡسِلُ | الرِّیٰحَ | بُشۡرًۢا | بَیۡنَ یَدَیۡ رَحۡمَتِہٖ ؕ | | حَتّٰۤی | اِذَاۤ |
| چې رالیږی | هواګانې | زیرې | امخکښې درحمت خپل نه | | اتر دې پورې | چې کله |
| چې دخپل(باران)رحمت نه مخکښې بادونه دزیرې په طور رالیږی \| هرکله چې دغه (بادونه) | | | | | | |
| اَقَلَّتۡ | سَحَابًا | ثِقَالًا | سُقۡنٰہُ | لِبَلَدٍ | | مَّیِّتٍ |
| اوچتې کړې دغه هواګانې | ورځې | داوبونه ډکې(درنې) | بوزو مونږه هغه | یوښارته | | چې مړوی |
| داوبو ډکې ورېځې اوچتې کړی \| نو مونږ نې یو مړې اوچې علاقې ته اولیږو | | | | | | |
| فَاَنۡزَلۡنَا | بِہِ | الۡمَآءَ | فَاَخۡرَجۡنَا | بِہٖ | | مِنۡ کُلِّ الثَّمَرٰتِ ؕ |
| نو نازلې کړو مونږه | په هغې باندې | اوبه | نوراوباسو مونږه | په دغه اوبو سره | | دهرقسم میوونه |
| نو باران ترې اوروو \| ............نو رنګ رنګ میوې پرې راپیدا کړو | | | | | | |

[1] ابوداوْد کتاب الوتر باب الدعاء: ۱۴۸۰، احمد: ۱۷۲/۱.
[2] ابوداوْد کتاب الطهارة باب الاسراف فی الوضوء: ۹۶، وسنده صحیح، ابن ماجه: ۳۸۶۴، احمد: ۸۷/۴، حاکم: ۱۶۲/۱، ابن حبان: ۶۷۶۴

كَذٰلِكَ نُخْرِجُ الْمَوْتٰى لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ۝ وَالْبَلَدُ

دارنګي | راوباسو مونږه | مړي | دپاره ددې | چې تاسو نصيحت واخلئ | اوزمکه

همداشان مونږمړي راژندي کوواديې دپاره چې تاسو ددې نه سبق واخلئ | اوزرخيزه زمکه

الطَّيِّبُ يَخْرُجُ نَبَاتُهٗ بِاِذْنِ رَبِّهٖ ۚ وَالَّذِيْ خَبُثَ

پاکه | راوځي | بوټي دهغې | په حکم | درب خپل سره | اوهغه زمکه اچې خرابه وي

دالله ﷻ په حکم سره خپلې شينکي راوباسي | اوچې کومه (زمکه) خرابه وي

لَا يَخْرُجُ اِلَّا نَكِدًا ۭ كَذٰلِكَ نُصَرِّفُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ

نه | راواوځئ | مګر | لږه | دارنګي | مونږه بيا بيا بيانوو | آيتونه | دپاره دهغه قوم

هغه صرف ناقصه پيداوار زرغونوي | ..........مونږ دغه شان بيابيا خپل اياتونه بيانوو

يَّشْكُرُوْنَ ۝

چې شکر اوباسي |

چې شکراوباسئ |

**قوله تعالى:: فَاَنْزَلْنَا بِهِ الْمَآءَ**

**د باران رحمت نازليدل د الله ﷻ د طرف نه دی:-** الله ﷻ چه کله ددې ذکر نه فارغ شو، هغه خالق دارض اوسماء دې متصرف حاکم او مدبردې.اود دعا غوښتلودطريقې تعليم ني هم ورکړو نو اوس د دې خبرې نه خبرول کوی چه هم هغه رازق دې مړی به د قيامت په ورځ هم هغه راوچتوی. هواګانې هم هغه راليږی چه داوبونه ډکې اوريځې خلورو واړوطرفوته خورې کړی. بعضو (نشرا) په (بشرا) سره لوستلې دې لکه چه فرمانی ﴿ وَمِنْ اٰيٰتِهٖۤ اَنْ يُّرْسِلَ الرِّيَاحَ مُبَشِّرٰتٍ ﴾ يعنی هواګانې دبارانونو زيرې ورکوی.ارشاددې ﴿ بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهٖ ۭ ﴾ دلته درحمت نه مراد باران دې.لکه چه فرمانی دخلقو د نااميده کيدو نه پس هغه اوريځې راليږی چه دهغه رحمت راوروی يعنی اوبه([1]) اوفرمانی چه دالله ﷻ درحمت په آثارو نظر واچوه چه د زمکې د مړکيدونه پس څنګه دا ژوندنی کوی دغه شان هغه د مړو په ژندی کولو قادردې. ([2]) او د الله ﷻ ارشاد دې ﴿حَتّٰۤى اِذَآ اَقَلَّتْ سَحَابًا ثِقَالًا﴾ يعنی هواګانودرنې اوريځې اوچتې کړې وی. څکه چه په هغې کښې وزن لرونکې اوبه وی چه زمکې سره نيزدې کيږی. بياارشاد فرمانی﴿ سُقْنٰهُ لِبَلَدٍ مَّيِّتٍ ﴾ او مونږ مړ او قحط نيولې اوچه زمکه خړوب کوولکه چه فرمانی﴿وَاٰيَةٌ لَّهُمُ الْاَرْضُ الْمَيْتَةُ ۖ اَحْيَيْنٰهَا ﴾په دې وجه ارشاد فرمانی﴿ وَاٰيَةٌ لَّهُمُ الْاَرْضُ الْمَيْتَةُ ۖ اَحْيَيْنٰهَا﴾يعنی څنګه چه مونږ زمکه دمړه کيدونه پس ژوندنی کوو دغه شان به بدنونه دخاورې کيدو نه پس هم د قيامت په ورځ راژوندی کوو. الله ﷻ به د آسمان نه اوبه راوروی او ترڅلويښتوورځو پورې به باران راروان وی اوانسانان به د خپلو خپلو قبرونونه داسې راپاسی لکه چه د زمکې نه دانه راټوکيږی. د دې مضمون آياتونه په قرآن پاك کښې ډيرزيات دی.

الله ﷻ د قيامت ورځې د مثال په توګه بيان فرمانی. ﴿ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ۝ ﴾ په دې مقصد سره چه کيدې شي

---

[1]) ٤٢/الشورى:٢٨.

[2]) ٣٠/الروم: ٥٠.

تاسونصيحت اوعبرت حاصل كړئ.د الله ﷻ قول دي ﴿وَالْبَلَدُ الطَّيِّبُ يَخْرُجُ نَبَاتُهُ بِإِذْنِ رَبِّهِ﴾ په ښه زمكه د الله ﷻ په حكم سره بوټي راټوكيږي ﴿ وَالَّذِيْ خَبُثَ لَا يَخْرُجُ إِلَّا نَكِدًا ﴾ او چه كومه خرابه زمكه ده لكه كانړيزنه او شګلنه دي نه به هغه شان پيداوار كيږي كه نه. دا خبره د مؤمن او كافرد پاره د مثال په توګه بيان كړې شوې ده.

**دعلم او هدايت مثال:-** رسول الله ﷺ فرمانيلي چه زه الله ﷻ په كوم علم او هدايت سره راليږلي يم د دې مثال دهغه اوريخې دې چه په زمكه باندې اووريږي نو چه كومه آباده زمكه وي هغه اوبه قبلوي او شينكي او پيداوار راټوكوي اودې سره الله ﷻ خلقو ته فائده رسوي. خلق ني څكي او زميندارة پرې كوي. او يوه بله زمكه وي كلكه شاړه زمكه چه اوبه پرې خونديږي وابنه او شينكې پرې نه راټوكيږي. دا د دې دوو قسمو خلقومثال دې چه يو علم زده كړو اود الله ﷻ د دين نه خبر شو اوزما د مبعوث كيدونه ني فائده حاصله كړه او بل هغه وي چا چه هيڅ زده نه كړل اونه ني دالله ﷻ هدايت حاصل كړوكوم چه زما په معرفت باندې راليږلي شوي دي.([1])

| |
|---|
| لَقَدْ اَرْسَلْنَا نُوْحًا اِلٰى قَوْمِهٖ فَقَالَ |
| په تحقيق سره \| اوليږومونږه \| نوح ﷺ \| قوم خپل ته \| نواووئيل هغه |
| مونږ نوح ﷺ دهغه قوم ته اوليږلو \| ..................نوهغه ورته اووئيل |
| يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ اِنِّيْٓ |
| اے زما قومه \| بندګي كوئ دالله \| نشته تاسولره \| بل خدائي \| بې دهغه نه \| بيشكه زه |
| اني زما قومه صرف دالله ﷻ عبادت كوئ \| دهغه نه سوا ستاسوبل څوك معبود نشته \| بيشكه زه |
| اَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ۝ قَالَ الْمَلَاُ مِنْ قَوْمِهٖٓ |
| يريږم \| په تاسو \| دعذابه دورځې \| لوئې نه \| اووئيل \| سردارانو \| دقوم دهغه نه |
| په تاسو باندې د الله د لوئې ورځې د عذاب نه يريږم \| ..................دهغه دقوم سردارانواووئيل چې |
| اِنَّا لَنَرٰىكَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ۝ قَالَ يٰقَوْمِ لَيْسَ |
| بيشكه مونږه \| وينو تالره \| په ګمراهئ \| ښكاره كښې \| هغه اووئيل \| اے زما قومه \| نشته |
| مونږته خوداسې ښكارې چې ته په ښكاره ګمراهئ كښې اخته نې \| هغه اووئيل اې زما قومه |
| بِيْ ضَلٰلَةٌ وَّلٰكِنِّيْ رَسُوْلٌ مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ۝ |
| په ما باندې \| ګمراهي \| وليكن زه \| راليږلې شوې يم \| دطرفه درب العالمين نه \| |
| په ما كښې ذره برابر غلطي نشته \| اوزه د مخلوق د پالونكي د طرفه پيغمبر يم |
| اُبَلِّغُكُمْ رِسٰلٰتِ رَبِّيْ وَاَنْصَحُ لَكُمْ وَاَعْلَمُ |
| زه رسوم تاسوته \| پيغام \| درب زما \| اونصيحت كوم زه \| تاسوته \| اوښه پوهيږم زه \| |
| تاسوته دخپل رب پيغامونه دررسوم \| .اوستاسو خيرخواه يم \| ........او ماته د |

---

[1]) صحيح بخارى كتاب العلم باب فضل من علم وعلم: ۷۹، صحيح مسلم: ۲۲۸۲، مسندابى يعلى: ۷۳۱۱.

| مِنَ اللّٰهِ | مَا | لَا تَعْلَمُوْنَ۝ |
|---|---|---|
| دطرفه دا الله نه | په هغه څه | چې تاسو پرې نه پوهيږئ |
| الله ﷻ دطرفه هغه خبرې معلومې دي | چې تاسودهغې نه خبر هم نه يئ | |

قوله تعالى:: فَقَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ

**دنوح ﷺ خپل قوم ته وعظ کول:-** الله ﷻ په اول سورت کښې د آدم ﷺ اوهغه سره دمتعلقاتو قصه بيان کړه نو وروسې د نورو انبياء کرامو قصې بيانوی. شروع د نوح ﷺ د ذکر نه کوی ځکه چه هغوی د ټولو نه اول رسول دې ځوك چه الله ﷻ د آدم ﷺ نه پس دنيا ته راوليږلو. هغه نوح بن لامك بن متوشلخ بن اخنوخ دې، اخنوخ نوم هم د ادريس نبی دې. هم دهغه باره کښې ونيلې شوې دی چه: ليکلو فن هم هغه ايجاد کړې دې. اخنوخ بن برد بن مهليل بن قنين ابن يانش بن شيث بن آدم ﷺ. يو نبی داسې تکليفونه نه دی اوچت کړی لکه چه نوح ﷺ. بعضې نبيان قتل شوی هم دی. نوح ﷺ به په خپل نفس باندې ډيره نوحه يعنی ژړا کوله په دې وجه دهغه نوم نوح ﷺ شو. د آدم ﷺ د زمانې نه دنوح ﷺ دزمانې پورې لس صدئی تيرې شوی. دا ټول په اصول اسلام او توحيد باندې وو.

**دبتانوعبادت څنګه اوکله شروع شوې دې:-** دتفسير عالمان وائی چه دبتانودعبادت شروع داسې شوې چه هغه خلق کوم چه صالحان وواوکله مړه شو نودهغوی عقيدتمندو دهغوی په قبرونوجماتونه جوړکړل اود هغوی تصويرونه ئی جوړکړل او په هغې کښې ئی کيخودل چه هغوی يادوی اود هغوی عبادتونه او حالت يادوی اوهم دهغوی په شان خان جوړولو کوششونه ئی کول.کله چه څه زمانه تيره شوه نود هغوی د تصويرونو په ځای ئی د هغوی بتان جوړکړل څه مودې پورې ئی ددې بتانو احترام کولو نو عبادت ئی شروع کړو.د دې بتانو نومونه هم د دې نيکانو په نومونوباندې وو لکه ود، سواع، يغوث، يعوق او نسر وغيره. کله چه دا بت پرستی زياته شوه نو الله ﷻ نوح ﷺ راوليږلو چه عبادت صرف د يو الله ﷻ کول پکار دی. ای قومه! عبادت صرف د الله ﷻ کوئی اود هغه نه علاوه اقتداردبل چا په لاس کښې نشته چرې داسې نه وی چه په تاسودالله ﷻ عظيم عذاب نازل شی.نو د هغه قوم جواب ورکړو چه زمونږ پلارانو نيکونوبه هم داسې کول. ته د دې د عبادت نه مونږ منع کوې. مونږ خو تا په دې باره کښې په لويه غلطئی او ګمراهئی باندې ګڼړو.

**د نن صبا فاجرانو حال:-** د نن صبا د فاجرانوهم دغه حال دې چه هغوی پخپله په نيکوکارانو باندې د ګمراهئی الزام لګوی.لکه چه فرمائی﴿ وَاِذَا رَاَوْهُمْ قَالُوْٓا اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ لَضَآلُّوْنَۙ ﴾يعنی دابدکاران چه کله نيکو کارانوته ګوری نووائی چه داګمراه شوی دی اوکافردايمان خاوندانوته وائی چه که چرې دوی په صحيح خبره باندې وونو اول به مونږ دا اختيارکړې وه. او هغوی خو پخپله په هدايت باندې نه وو نو دوی وائی چه دوی خو پخپله ګمراه دی او دروغ وائی.د دې قسم ډير آياتونه دی.بيا ارشاد دې چه نوح ﷺ وائی ای خلقو! زه ګمراه نه يم زه هغه خبر دررسوم کوم چه خاص الله ﷻ راليږلې دې. زه ستاسو خيرخواه يم ماته د الله ﷻ د طرف نه هغه علم دې چه تاسو ته نشته.د رسول هم دغه شان وی چه هغه به يو فصيح او بليغ او ناصح مبلغ وی. د الله ﷻ په مخلوقاتوکښې په دې صفتونو سره بل ځوك متصف نه وی.

**رسول کريم ﷺ هم د نوح پشان خبره کړې ده:-** لکه څنګه چه حضور ﷺ خپلو اصحابوته د عرفې په ورځ فرمانيلې وو چه په زرګونو خلق راجمع شوې وو.ای خلقو! تاسونه به زماباره کښې تپوس کولې شی او زمادفريضې د ادا کولو د تصديق غوښتنه به کولې شی نو تاسو به څه واينې؟خلقو اووئيل چه مونږ د دې ګواهې ورکولو ته تيار يوچه تاسو د تبليغ او خيرخواهئی حق اداکړې دې اود رسالت فريضه موپوره کړې ده.نو هغوی ﷺ خپله ګوته د آسمان طرف ته اوچته کړه بيا ئی دې خلقو طرف ته اشاره

اوکړه او ونی فرمائيل اې الله ﷻ گواه اوسيږه چه دوی زما تصديق کوی.(۱)

| | | |
|---|---|---|
| | اَوَعَجِبْتُمْ | اَنْ |
| | ایا تعجب کوئ تاسو | په دې خبره چې |
| ایا تاسو په دې خبره تعجب کوئ | | |

| جَآءَكُمْ | ذِكْرٌ | مِّنْ رَّبِّكُمْ | عَلٰى رَجُلٍ | مِّنْكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| راغې تاسو ته | ذکر | د طرفه درب ستاسو نه | په یوسړي باندې | له تاسو نه |
| تاسو ته دخپل رب د طرفنه ستاسو په قوم کښې په يو سړي دنصيحت خبرې راغلي دي | | | | |

| لِيُنْذِرَكُمْ | وَلِتَتَّقُوْا | وَلَعَلَّكُمْ |
|---|---|---|
| دپاره ددې چې اويروي تاسو | اودپاره ددې چې پرهيزګاران شئ تاسو | اودپاره ددې چې په تاسو |
| دې دپاره چې تاسو دعذاب نه اويروي | او دې دپاره چې تاسو پرهيزګارجوړشئ | او دې دپاره چې |

| تُرْحَمُوْنَ۝ | فَكَذَّبُوْهُ | فَاَنْجَيْنٰهُ | وَالَّذِيْنَ |
|---|---|---|---|
| رحم اوکړې شي | خو هغوئ دروغ اوګڼړو هغه | نو بچ کړومونږه هغه | اوهغه کسان |
| په تاسو رحم اوشي | خو هغوئ نوح ﷺ دروغژن اوګڼړلو | نومونږ هغه ته او د هغه سره | |

| مَعَهٗ | فِي الْفُلْكِ | وَاَغْرَقْنَا | الَّذِيْنَ | كَذَّبُوْا |
|---|---|---|---|---|
| چې دهغه سره وو | په کشتئ کښې | اوغرق کړل مونږه | هغه خلق | چې دروغ ئې ګڼړلي وو |
| په کشتئ کښې ناست ټولو ملګرو ته نجات ورکړو | | اوچاچې زمونږ آیتونه دروغ ګڼړلي وو | هغوئ مونږ غرق کړل | |

| بِاٰيٰتِنَا | اِنَّهُمْ كَانُوْا | قَوْمًا عَمِيْنَ۝ |
|---|---|---|
| آیتونه زمونږ | بیشکه چې هغوئ وو | قوم ړوند |
| دوئ یقيني طور سره (په زړونو باندې) ړانده شوي وو | | |

**قوله تعالي:: وَاَغْرَقْنَا الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا**

**د نوح ﷺ د قوم په اوبوکښې غرقيدل:-** الله ﷻ د نوح ﷺ د قوم باره کښې فرمائي چه تاسو ته په دې خبره حيرانتيا ولې ده چه الله ﷻ هم ستاسو په يو سړي باندې وحی رالیږی. داخو په تاسو مهربانی اوکرم دې هغه تاسو دالله ﷻ نه ويروی چه تاسو د الله ﷻ د عذاب نه لرې شئ او شرك مه کوئ کيدې شي چه په تاسو باندې رحم اوکرم اوشي. خو قوم نوح ﷺ دروغ اوګڼړلو او د نوح ﷺ مخالفت ئې شروع کړو او ډيرو کموخلقو ايمان راوړو. لکه چه فرمائي مونږ نوح ﷺ اود هغه ملګري په کشتئ کښې کينول او خلاصې مو ورکړو او زمونږ تکذيب کونکي موغرق کړل. لکه چه فرمائي هغوی دخپلو ګناهونو په سبب غرق کړې شو او دوزخ ته ورا وغورزولې شو. اوس دالله ﷻ نه سوا بل څوك د هغوی امداد کونکی کيدې شي داخلق خو ړانده وو چه حق څيز ئې نه شو ليدلې. په دې قصه کښې الله ﷻ بيان اوکړو چه د الله ﷻ دوستانوسره په دښمنی کولوڅنګه سزا ملاؤشوه، رسول او مؤمنانو خلاصې بيامونډلو. لکه چه فرمائي مونږ د خپلو رسولانو امداد کوو غلبه او کاميابی هم نيکانو ته حاصله ده که هغه په دنياکښې وی او

(۱) صحيح مسلم: کتاب الحج باب حج النبی ﷺ: ۱۲۱۸

كه په اخرت كښې وي.

**طوفانو نوح په ټوله دنيا محيط وو**:-زيدبن اسلم رحمه الله فرمائي چه دنوح عليه السلام قوم دومره ډير وو چه ښار او ځنګل ترې نه ډك شوي وو. د زمكې په هره حصه باندې دهغوی قبضه وه. د نوح عليه السلام سره خلاصې بيامونډلو كښې اتيا(۸۰)كسان وو هم د دوی نه يو جرهم وو چه دهغه ژبه عربي وه.

وَاِلٰى عَادٍ اَخَاهُمْ

| او عاد يانوته | رورد هغوی

| اوقوم عادته مو دهغوی رور

هُوْدًا ؕ قَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ؕ اَفَلَا

هود| اووئيل هغه| اے قومه زما| بندګی كوئ دالله| نشته دې تاسولره بل خدائ| بغير دهغه نه | ايا

هوداوليرلو| هغه ورته اووئيل اې زما قومه صرف دالله عبادت كوئ| چې بيشكه دهغه نه سوا بل خوك د عبادت لائق نشته

تَتَّقُوْنَ ۝ قَالَ الْمَلَاُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖۤ اِنَّا

پس يريږئ تاسو| اووئيل| سردارانو| هغو | چې نه ني منله خبره دهغه| دقوم دهغه نه | بيشكه مونږه

اياتاسو دګناهونونه پرهيزنه كوئ| دقوم كافرو سردارانو ورته جواب كښې اووئيل | چې

لَنَرٰىكَ فِيْ سَفَاهَةٍ وَّاِنَّا لَنَظُنُّكَ مِنَ الْكٰذِبِيْنَ ۝

خامخاوينوتالره|په بې عقلئ كښې| اوبيشكه مونږه | خامخاګمان كوو په تاباندې| دذروغژنانونه|

مونږ ته خوداسې ښكاري چې ته په بيوقوفتيا كښې پروت ني |او مونږ په تا باندې د دروغژنو ګمان كوو|

قَالَ يٰقَوْمِ لَيْسَ بِيْ سَفَاهَةٌ وَّلٰكِنِّيْ رَسُوْلٌ

اووئيل هغه | اے قومه | نشته | په ماباندې| بې عقلي | وليكن زهٔ | رسول يم

هغوئ ورته اووئيل چې اې زما قومه زه خه بيوقوفه نه يم | بلكه زه خود هغه ذات د طرفه رسول يم|

مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ اُبَلِّغُكُمْ رِسٰلٰتِ رَبِّيْ وَاَنَا لَكُمْ

دطرفه درب العالمين نه | رسوم تاسوته| پيغامونه | درب زما| اوزهٔ |تاسو لره

چه د ټول مخلوق رب دې| تاسوته دالله ﷻ پيغامونه دررسوم| او په دې يقين اوكړئ چې

نَاصِحٌ اَمِيْنٌ ۝ اَوَعَجِبْتُمْ اَنْ جَآءَكُمْ ذِكْرٌ

نصيحت كونكې يم| امانتداريم| ايا تعجب كوئ تاسو| چې راغې تاسوته |نصيحت

ستاسو خيرخواه يم | ايا تاسو په دې خبره تعجب كوئ چه تاسو ته دالله ﷻ دطرفه

مِّنْ رَّبِّكُمْ عَلٰى رَجُلٍ مِّنْكُمْ لِيُنْذِرَكُمْ ؕ وَاذْكُرُوْۤا

دطرفه درب ستاسونه|په يوسړي باندې| ستاسونه | دپاره ددې چې اويروی تاسو | اوياد كړئ

هم ستاسو نه يو سړي باندې نصيحت نازل شوې دې | چې تاسودعذاب نه خبركړي

اِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَآءَ مِنْۢ بَعْدِ قَوْمِ نُوْحٍ وَّزَادَكُمْ

كله چې| هغه جوړ كړئ تاسو| خليفګان | روستو | دقوم دنوح نه |اوزيات نې كړئ تاسو

اوياد كړئ چې هغه (الله) تاسودنوح عليه السلام دقوم نه پس اباد كړئ | اوتاسو ته ئې

| فِي الْخَلْقِ | بَصْۜطَةً | فَاذْكُرُوْٓا | اٰلَآءَ اللّٰهِ | لَعَلَّكُمْ | تُفْلِحُوْنَ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| په پیدانش کښې اپه لحاظ د طاقت سره | انو یادکړئ | نعمتونه دالله | امید دی | چې تاسو به خلاصي بیا مومئ | |
| مضبوطي کاتئ: درکړې | نو دالله ﷻ نعمتونه یادساتئ | چې په دنیا او آخرت کامیاب شئ | | | |

قوله تعالىٰ:: قَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ

**د هود ﷺ خپل قوم ته تبلیغ:-** الله ﷻ فرمائي څنګه چه مونږ د نوح ﷺ قوم ته رسول لیږلې وو نوقوم عاد ته موهم د دوی نه یو سړې هود ﷺ رسول لیږلی وو. دا د عادبن ارم اولادوو، په لویو لویو مکانونو کښې به اوسیدل. لکه چه فرمائي تاسونه دي کتلي چه قوم عادته الله ﷻ څنګه سزا ورکړه د هغوی مکانونه اوباغونه دلویو لویو ستنوو الا وو.په بناړونو کښې داسې لوئ مکانونه چرته هم نه وو اودا د هغوی د زبردست بدني طاقت دلیل وو. لکه چه فرمائي قوم عاد په فخر او ځان خودلو کښې پریوتل او ناحق کبر ئې اوکړو او کولاؤ دعوه ئې اوکړه چه زمونږ نه زیات طاقتور بل څوك دې؟ آیا دوی په دې غوراونه کړو،الله ﷻ چه دوی ئې پیداکړی دی هغه د دوی نه زیات قوی دې. هغوی زمونږ د آیاتونو او معجزو نه انکار کولو.

**د هود علیه السلام د قوم وطن چرته وو؟** .-د هغوی د اوسیدو ځائ ملك یمن کښې احقاف کښې وو او هغه یو شګلن او غریز ځائې دې.حضرت علي ﷺ دحضرموت یو سړی ته اوونیل چه آیا تا په حضر موت کښې یوه سره غونډئ لیدلې ده د کوم خاوره چه سره ده. د دې غونډئ په فلانکی فلانکی غاړه باندې د بیرو او پیلو(یوقسم ونه ده) ډیرې ونې دی. هغه ونیل او خو په الله ﷻ قسم اې امیرالمؤمنین ته خو داسې بنائې لکه چه پخپله دې په خپلوسترګو لیدلې وی. هغه اوفرمائیل چه کتلې خو مې نه دې لیکن ماته داسې حدیث رارسیدلې. هغه اوونیل اې امیرالمؤمنین تاسو د دې باره کښې څه فرمائیل؟ هغوی اوفرمائیل چه هم دلته د هود ﷺ قبردې[1]دې حدیث نه دا فائده حاصلیږی چه د قوم عاد د اوسیدو ځایونه یمن کښې دی او هود ﷺ هم هلته دفن دې.هود ﷺ په خپل قوم کښې د شریف ترین خاندان نه وو. ټول رسولان د افضلوقبیلونه وی. خود هود ﷺ قوم چه په بدني طاقت کښې څومره زیات سخت وو نودهغوی زړونه هم داسې سخت وو اود حق تکذیب د ټولو امتونونه زیات هم هغوی کړې دې. ددې دپاره هود ﷺ به هغوی د یو ذات عبادت او تابعدارئی ته رابلل خود هود ﷺ دې کافرې ډلې ونیل اې هود! مونږ خوتا ډیر ناپوهه ګمراه ګڼړو چه مونږ ته د بتانود عبادت پریخودو دعوت راکوې او د یو الله د عبادت مشوره راکوې. لکه څنګه چه قریشو د نبي کریم ﷺ په داسې دعوت باندې حیرانتیا کړې وه چه هغه د دومره ډیرو خدایانونه صرف یو(رب) الله جوړکړو.

**د هود علیه السلام د قوم دشک اوحیرانتیا جواب:-**مطلب دا چه هود ﷺ هغوی ته اوفرمائیل چه اې خلقوا ما کښې ناپوهي نشته بلکه زه د الله ﷻ رسول یم، د رب د طرف نه مې حق خبره راوړې ده راغلې یم. هرڅیز هم د الله ﷻ پیداکړې شوې دې او هغه د هرڅیز رب دې. زه درب پیغامونه تاسو ته رسووم. زه په صحیح معنی کښې ستاسوخیرخواه یم. هم دغه هغه صفتونه دی په کوم چه رسول متصف وی یعني نصیحت او امانت، که چرې هم ستاسو په یو سړی وحی راشي اوهم ستاسو د بنیګړې د پاره هغه تاسوته اورسوی نوېدې کښې حیرانتیاولې کوئی؟بلکه دا خوستاسو د پاره د شکر مقام دې او داخود الله ﷻ احسان اومنئ چه هغه د نوح ﷺ د قوم ځائ تاسوله درکړو او هغه قوم هلاك شو کومو چه دخپل رسول وینا نه وه منلې او بله داچه په بدني توګه باندې ئې تاسو ډیر طاقتور جوړکړی یئ. تاسو د نورو قومونوپه مقابله کښې ډیر اوږد قد والا او پلن ئې.داقسم ذکر الله ﷻ د طالوت په قصه کښې هم کړې

[1] الطبری: ۵۰۷/۱۲.

دي چه په علمي او بدني طاقت کښې طالوت ډېر خصوصيت لرلو. بيا ارشاد دې چه د الله ﷻ نعمتونه ياکړئ دهغه احسانونه په سوچ کښې راولئ کيدې شي چه تاسو خلاصي بيامومئ.

قَالُوٓا اَجِئۡتَنَا لِنَعۡبُدَ اللّٰهَ وَحۡدَهٗ وَنَذَرَ

اوونيل هغوئ | آيا راغلې ئي ته مونږ ته | دپاره ددې چې عبادت اوکړو مونږه د الله | يوازې | اوچې پريږدو مونږه

هغوئ اوونيل آيا ته ددې دپاره راغلې ئي | چې مونږ صرف د الله ﷻ عبادت شروع کړو

مَا كَانَ يَعۡبُدُ اٰبَآؤُنَا فَاۡتِنَا بِمَا تَعِدُنَآ

هغه | چې عبادت به ئې کوؤ | پلارانو زمونږه | نو راوله مونږ ته | هغه عذاب | چې ته يرې يروې مونږه

او دخپل پلار نيکه نو رټول معبودان پريږدو | نو ته اوس هغه عذاب راوله دکوم نه چې دې مونږ ويرولو

اِنۡ كُنۡتَ مِنَ الصّٰدِقِيۡنَ ۝ قَالَ قَدۡ وَقَعَ عَلَيۡكُمۡ

که چرې ئي ته | دريښتينو خلقو نه | اوونيل هغه | چې واقع شو | په تاسو

که ته په دې کښې ريښتونئ يې | ..........هغه ورته اوونيل چې بيشکه په تاسو باندې به د

مِّنۡ رَّبِّكُمۡ رِجۡسٌ وَّغَضَبٌ ؕ اَتُجَادِلُوۡنَنِيۡ فِيۡۤ اَسۡمَآءٍ

دطرفه درب ستاسونه | عذاب | اوقهر | آيا تاسوجګړه کوئ زماسره | په هغه نومونو کښې

الله ﷻ طرفنه پليتي او غضب واقع شو | نوآيا تاسو ماسره په داسې نومونو باندې جګړه کوئ

سَمَّيۡتُمُوۡهَآ اَنۡتُمۡ وَاٰبَآؤُكُمۡ مَّا نَزَّلَ اللّٰهُ بِهَا

چې کينښودلي دي تاسو هغه | تاسو | او پلارانو ستاسو | چې نۀ دې | نازل کړې | الله | په هغې

چې تاسو او ستاسو پلارانو پخپله ايخودي دي | او الله ﷻ دهغې (په معبوديت باندې) هيڅ

مِنۡ سُلۡطٰنٍ ؕ فَانۡتَظِرُوۡٓا اِنِّيۡ مَعَكُمۡ مِّنَ الۡمُنۡتَظِرِيۡنَ ۝

څه | دليل | نو انتظار کوئ تاسو | بيشکه زۀ ستاسو سره | دانتظار کونکونه يم

دليل نه دې راليږلې | ......نوتاسو انتظار کوئ |...اوزه به هم تاسوسره انتظار کونکې يم

فَاَنۡجَيۡنٰهُ وَالَّذِيۡنَ مَعَهٗ بِرَحۡمَةٍ مِّنَّا وَقَطَعۡنَا

نو بچ کړو مونږه هغه | او هغه کسان | چې وو هغه سره | په رحمت سره | دطرفه زمونږه | او پريکړو مونږه

نو مونږ هغه ته او دهغه ملګرو ته پخپل رحمت سره نجات ورکړو | او د هغه کسانو جرړې مو پريکړې

دَابِرَ الَّذِيۡنَ كَذَّبُوۡا بِاٰيٰتِنَا وَمَا كَانُوۡا مُؤۡمِنِيۡنَ ۝

بيخ | دهغه کسانو | چې دروغ ئې ګڼرلي وو | آيتونه زمونږه | اونۀ وو هغوئ | مومنان

چې زمونږ آيتونه ئې دروغ ګڼرل | .............اوهغوئ هيڅکله ايمان نه راوړلو

**قوله تعالیٰ:: وَقَطَعۡنَا دَابِرَ الَّذِيۡنَ كَذَّبُوۡا بِاٰيٰتِنَا**

**دقوم عاد تباهي اوبربادي** - الله ﷻ خبرورکوي چه دا کفار هود ؑ سره څنګه انکار، طغيان او دښمني سره پيش شو اووئي ونيل چه آيا ته مونږ له د دې دپاره راغلې ئي چه مونږ د يو الله ﷻ عبادت اوکړو او زمونږ پلارانو نيکونوچه د چا عبادت کولو هغه ټول پريږدو. بنه ده که ته ريښتونې ئي نوچه د کوم



عذابونونه مونږ ویروي راوړه نازل نی کړه. لکه څنګه چه به د قریشو کافرانو ونیل که د عذاب ستا دا دهمکي ربښتیاده نودآسمان نه کاڼي راؤوروه اومونږبه دردناك عذاب کښې راګیر کړه.محمدبن اسحاق ﷺ فرمانی چه هغه خلقو د بتانوعبادت کولو.دیو صنم یعنی بت نوم صمد وو اود دویم نوم صمود اود یو نوم وو هبا.ددې دپاره هود ﷺ ونیلي ووستاسو ددې وینا په وجه په تاسو باندې د الله ﷻ غضب واجب شوي دې. ونیلی شوی دی چه رجس نه مراد رجز دې یعنی عذاب. آیا تاسو ماسره د دې بتانو باره کښې جګړه کوې د کومو نومونه چه تاپاستاسو مشرانوکیخودې دی.دا بتان خو نه نفع رسوی اونه نقصان اونه الله ﷻ تاسوته د دې د عبادت څه سند درکړې دې اونه د دې خبرې څه دلیل شته.که چرې هم دغه خبره وی نو دعذاب انتظارکوئی. تاسو سره زه هم انتظارکوم. دا د الله ﷻ د رسول ﷺ د طرف نه خپل قوم ته ډیر لوئ او زبردست تهدید دې. د دې نه پس ارشاد دې چه مونږ خو هود ﷺ بچ کړو اود هغه ملګری هم کوموچه په هود ﷺ باندې ایمان راوړې وو اوچا چه زمونږ د آیاتونو تکذیب کړې وو د هغوی قصه مو صفاکړه. دهغوی د هلاکت واقعات په قرآن کریم کښې په بل ځائ کښې داسې ذکر دی چه په هغوی یوه سخته سیلئی راؤلیږلې شوه او چاته چه به رسیدله هغه به نی تباه برباد کړو. لکه څنګه چه په یوبل آیت کښې دی چه عادیان په یوه هوا صرصر سره هلاك کړې شو. داسیلئی اته ورځې او اووه شپې‌پورې چلیده. دا سرکش خلق داسې مړه پراته وو لکه چه د کهجورو تنې چه جدا وی اوښاخونه جدا وی. په دوی کښې څوك هم باقی پاتې نه شو[1]د دوی د سرکشئی په سبب الله ﷻ یوه زبردسته سیلئی رالیږلې وه اودوی نی هلاك کړې وو.هوا به دوی آسمان طرف ته اوچتول او سرد لاندې به نی په زمکه راګذار کړل. سربه نی مات شو اود تنې نه به جدا شو په دې وجه اوفرمانیلې شو چه لکه د کهجورې د تنې په شان شوی وو د کوم ښاخونه او سرونه چه خالی شوی وی([2])دا خلق به په یمن کښې د عمان اوحضرموت په مینځ کښې اوسیدل. دې نه علاوه په ټوله زمکه کښې تر لرې لرې خواره شوی وو اوپخپل طاقت خودلوکښې به نی په خلقوباندې ظلم اوزبردستی کوله. دوی به د بتانو عبادت کولو نو الله ﷻ د دوی طرف ته هود ﷺ راولیږلو اوهغه د نسب په لحاظ د دې ټولونه زیات شریف وو. د هغه دا تاکیدوو چه الله ﷻ هم یو اوګڼئی او هغه سره څوك شریك مه ګرځوئی، په خلقو ظلم کولونه منع شئی خو دوی انکاراوکړو د هغه تکذیب نی اوکړو اونیلې زمونږ نه زیات طاقتور څوك دی. نورو خلقو هم د دوی تابعداری اوکړه. په هود ﷺ باندې د ایمان راوړونکو شمیر ډیر کم وو.کله چه عادیانو داسې سرکشئ نه کاراوخستلواودنیاکښې فساد خور کړو ګرځیدل او بغیرد ضرورت نه نی لوئ لوئ محلونو او عمارتونه جوړول نو هود ﷺ هغوی ته داسې مخاطب شو چه تاسو خلق په هرځائ کښې بغیر ضرورته مکانونه جوړونی اوداسې مضبوط مکانونه جوړونی لکه چه تاسوبه د همیشه د پاره دلته پاتې نی اوچه کله تاسوپه چاباندې تسلط مومئی نو ډیره سختی کوئی.دالله ﷻ نه اوویریږئی زما واورئی.

**دقوم هود ، هود علیه السلام ته جواب:** نو هغوی اوونیل اې هود(ﷺ)! ته یو بې دلیله انسان نی ستا په وینا مونږ خپل خدایان نه شو پریخودې او مونږ په تا باندې ایمان نه شو راوړې. زمونږ په پوهه کښې خودا راځی چه په تا باندې زمونږ د یو خدائی لعنت پریوتې دې چه لیونې شوې نی. هود ﷺ اوفرمانیل چه زه الله ﷻ ګواه جوړوم او تاسو هم ګواه اوسیږئی چه ستاسو د کفریه ذهنیت نه څه بری یم. اوس تاسو ټول یوځائ راجمع شئی او چه ماسره کوم کار کول غواړئی هغه اوکړئی او ماته مهلت پورې هم مه راکوئی.زما یقین په الله ﷻ باندې دې هغه زمااوستاسو هم رب دې. تاسوخوڅه چه یو ځناور هم داسې

[1] ٦٩/الحاقة: ٦-٧.
[2] ٦٩/الحاقة: ٧.

نشته چه د هغه په قدرت کښې نه وی. زما رب چه څه وائی صحیح وائی.(۱)

**هلاکت نه وړاندې قوم هود باندې درې کاله قحط او دقوم هود د وفد قصه:**-چه دا خلق په کفر باندې کلك ولاړ وو نو الله ﷻ درې کالوپورې په دوی باندې باران بند کړو هغوی په سخته فتنه کښې اخته شو او دغه شان چه کله به هغوی په داسې سخت مصیبت کښې راګیرشو نود الله ﷻ نه به نې دآسانې دعاګانې غوښتلې اود هغوی دا دستور وو چه څوك به نې بیت الله ته لیږل. په هغه زمانه کښې په مکه کښې د هغوی دقبیلې یوڅوکسان عمالیق اوسیدل او دا دعملیق بن یاوذ بن سام بن نوح ﷺ نسل وو د دې قبیلې سردار په هغه ورځوکښې معاویه بن بکر نومې یو سړې وو دهغه مور د قوم عاد نه وه اود هغې نوم جاهذه وو.دخبیری لور وه. نو قوم عاد د اویا کسانو یو وفد حرم شریف ته اولیږلو چه د الله ﷻ په کعبه کښې د باران دعااوکړی. داخلق د خپلې قبیلې معاویه بن بکر سره د مکې نه بهر حصارشو تریوې میاشت پورې هغه سره وو. شرابونه به نې څکل او هغه سره دوه ګانې وایونکې وینځو نه به نې ګانې بجانې اوریدلې. تریومیاشت پورې د هغوی اوسیدل اوږده شو بل خوا د معاویه د خپل قوم عاد پریشان حالنی او قحط په سبب زړه ډیر تنګ شوې وو. خود میلمنو د واپس کولو د پاره د وینا کولو نه شرمیدلو. یو څو شعرونه نې جوړ کړل اوهغه ډموته نې اوونیل چه دا دهغوی په وړاندې اووایئ. هغه دا وو:اې قیل!په تا افسوس دې پاسه دعااوغواړه. کیدې شی چه الله ﷻ اوریځې د ورولود پاره راولیږی دې د پاره چه د عاد زمکه خړوب شی. ځکه چه د عاد قوم حالت خو اوس دې حال ته رسیدلې دې چه خبره هم ښه شان سره نه شی کولې.د تندې نه نې ساوځی. بوډاګانو اوځوانانوته دژوند امید باقی پاتې نه شو.دهغوی د ښځو هم خیر نشته هغوی دلوږې اوتندې نه بې حاله دی. ځناور ښکاره د هغوی کلونه رانښوتلې دی ځکه چه د اهل عاد نه د هغوی هیڅ ویره نشته چه په غشی به نې اوولی او هلاك به نې کړی ځکه چه د غشو دچلولو طاقت په کښې پاتې نه شو. بس هم په دې پوهه شه چه د دوی شپې ورځې اوس ختمیږی. دیوقوم وفد به ستاسو په شان سپیره نه وی په تاسو دې د الله ﷻ غصه وی. دې اوریدو سره د دې وفد خلقوته احساس اوشو. کعبة الله ته لاړل اود خپل قوم د پاره نې دعا اوغوښتله. د هغه وفد د مشر نوم قیل وو.

**درې کاله پس درې قسمه وریځې ښکاره شوې:**- د الله ﷻ په حکم درې قسمه اوریځې ښکاره شوې یوه سپینه یوه توره اویوه سره.د آسمان نه آواز راغلوچه دخپل قوم دپاره د دې اوریځونه یوه خوښه کړئی.قیل اوونیل چه زه خودا توره اوریځ خوښوم ځکه چه توره اوریځ ډیره ویروونکې وی اواز راغلو چه تاخو تورباد او خاورې خوښې کړې قوم عاد نه به څوك هم باقی پاتې نه شی. دا اوریځ به نه پلار پریږدی اونه خونی ټول به تباه او برباد کړی خود عاد قبیله بنی الوذیه به محفوظ پاتې شی. د عاد دا قبیله په مکه کښې آباد وو په هغوی باندې هیڅ نقصان رانغلو.ټول عاد قوم تباه شو کوم خلق چه بچ شو هغه هم د دې قبیلې بنی الوذیه نه وو د هغوی د نسل او اولاد نه هغه قوم باقی پاتې شو کوم ته چه عادثانی وائی.

وائی چه الله ﷻ یوه توره اوریځ راولیږله کومه چه قیل خوښه کړې وه اوهم دا د دې قوم دعذاب سبب جوړه شوه. دمغیث نومې یوې وادئی نه راوچته شوه خلقوچه دااولیدله نوخوشحاله شواو وئی ویل داخو ورونکې اوریځ ده. الله ﷻ فرمائی چه دا اوریځ هواپه زور سره بهیونکې راوسته په دې کښې دردناك عذاب وو کوم چه هرڅیز هلاك کړی(۲)په دې اوریځ کښې یوڅیز چه د ټولونه وړاندې چا اولیدلو یوه ښځه وه چه د هغې نوم ممید وو. هغې چه په دې اوریځ کښې څه اولیدل هغه د دې په وجه

---

(۱) ۱۲٦\ الشعراء: ۱۲۸، ۱۳٦.

(۲) ٤٦/الاحقاف: ۲٤.

بې هوشه پرېوتله. کله چه هوش کښې راغله نو وئې وئیل چه په دې اوریځ کښې د اور شغلې وې څه خلق ښکاریدل چه داشغلې ئې راښکلې. اووه شپې اواته ورځې دااوریځې وریدې اویوعادی د هلاکیدو نه باقي پاتې نه شو. هودؑ اود هغه مؤمنان ملګری دې ځایٔ نه اخوا شوی وو او په یو پټې کښې اوسیدل. هلته هغوی ته هیڅ تکلیف اونه رسیدو. د باغ تازه هوا به د هغوی بدنونوسره لګیده او روح ته به ئې تازګی رسوله. خوپه قوم عاد باندې دې اوریځو کانړې ورول، د هغوی سرونه ماتیدل. د دې قصې ذکر ډیر اوږد دې اوسیاق عبارت هم عجیبه دې اودې نه ډیرې نتیجې هم راوځي. اللهﷻ فرمائي چه کله زمونږ عذاب راورسیدو نو مونږ هودؑ بچ کړواوهغه سره مؤمنان هم. د عذاب الیم نه هغوی محفوظ شو. (١)

**د بنو تمیم د یو بوډۍ قصه**:-د حارث البکریؓ نه روایت دې چه د علاء بن حضرمی شکایت سره زه رسول اللهﷺ له روان اوومه د ربذه په اقوامو باندې تیریدم چه د بنی تمیم یوه بوډئی کومه چه د دې قبیلې نه پاتې شوې وه او یوازې شوې وه وئې وئیل چه اې د اللهﷻ بنده مارسول اللهﷺ له بوزه. زما هغویﷺ سره کار دې. ما هغه په اوبن کینوله او مدینې ته مې راوستله. جمات د خلقو نه ډک وو او یو توره جنهډا اوچته کړې شوې وه. بلالؓ خپله توره ویستلې د رسول اللهﷺ په وړاندې ولاړ وو. ما تپوس اوکړو چه داخلق څنګه راجمع دی؟ خلقو اووئیل چه د عمروبن العاصؓ په مشرئی کښې بولښکر لیږلې شی زه کیناستم حضورﷺ خپلې کمرې ته لاړو ما د حاضرئی اجازت اوغوښتلو نو اجازت ملاؤشو. ما سلام اوکړو. ماته ئې اوفرمائیل چه ستاسو اود بنو تمیم په مینځ کښې څه خفګان دې؟ ماعرض اوکړو چه اوزما د هغه نه شکایت دې او الزام هم په هغه دې. زه تاسو له راتلم چه په لار کښې یوه بوډئی ملاؤ شوه چه د بنو تمیم د قبیلې وه چه د هغوی نه پاتې شوې وه. ماته ئې وئیل زما رسول اللهﷺ سره کاردې ما هم بوزه. هغه هم په دروازه کښې ولاړه ده، حضور ﷺ هغه هم راوبلله، هغه راغله. ما اووئیل یا رسول اللهﷺ! زمونږ اود بنوتمیم په مینځ کښې جدائی اوکړه. دې اوریدو سره د بنو تمیم دې بوډئی ته غیرت راغلو او په تیزئی سره ئې اووئیل یارسول الله! بیا به ستا پریشان حال چرته پناه اخلي. ما اووئیل چه زما مثال خو دهغه متل په شان شو چه چیلئی خپل مرګ پخپله راښکلو. ما دابوډئی راسوره کړه ماته څه پته وه چه دا به زما دښمنه ثابتیږی. زه اللهﷻ سره اود رسول اللهﷺ سره پناه اخلم د دې خبرې نه چه د عاد د وفد په شان جوړشم. نو حضورﷺ اوفرمائیل چه دقوم عاد څه قصه ده سره د دې چه حضورﷺ زما نه ښه پوهیدلو خوزما نه د اوریدوخواهشمندوو. ما اووئیل چه قوم عاد په قحط کښې اخته شوې وو نو هغوی خپل یو وفد مکې ته اولیږلود وفد د سردار نوم قیل وو. هغه مکې ته راغلو او دمعاویه بن بکر سره اوسیدو. یوه میاشت حصار وو شراب ئې څکل. جراد او تان نومې دوو وینځو نه ئې ګانې اورولې. بیا د وفدسردار قیل د مهره غرونوته لاړو اودعائي اوکړه چه اې الله تاته پته ده چه زه د بیمار د صحت د دعا غوښتلوله نه یم راغلې اونه د یو قیدی د خلاصولو دپاره فدیه غواړم بلکه اې الله عاد ته اوبه ورکړه نود اللهﷻ په حکم درې اوریځې ښکاره شوې. آواز راغلو چه یوه خوښه کړه نو هغه توره اوریځ خوښه کړه. آواز راغلو چه تاته خو به خاورې ملاؤشي د قوم عاد به یوکس هم باقي پاتې نه شي. اللهﷻ یوه سیلئی راولیږله چه د هواپه خزانه کښې به دومره وه لکه زما د ګوتې دائره په کومه چه هغه ټول قوم تباه شو. اوس د عربوخلق چه کله وفد لیږی نو د متل په توګه وائي چه د عاد د وفد په شان مه څئي. امام احمدؒ دا په خپل مسندکښې بیان کړې دې او ترمذی هم روایت کړې دې. والله اعلم.(٢)

---

(١) ١١/هود: ٥٨.
(٢) احمد: ٣/٤٨٢، ترمذی کتاب تفسیر القرآن باب ومن سورة الذاریات: ٣٢٧٣-٣٢٧٤ وهوحسن، ابن ماجه: ٢٨١٦

وَإِلَىٰ ثَمُودَ أَخَاهُمْ صَالِحًا قَالَ يَٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ

اواولیږو مونږ ثمودیانو ته | رور دهغوئ | صالح | اووئیل هغه | اے قومه زما | بندګی کوئ دالله

اوثمودیانو ته مو دهغوئ رور صالح لیږلی وو | هغه ورته اووئیل چې صرف دالله ﷻ عبادت کوئ

مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ قَدْ جَاءَتْكُم بَيِّنَةٌ

نشته ستاسو | بل خدائې | بې دهغه نه | بیشکه | راغلې دې تاسو ته | دلیل ښکاره

هغه نه سوا ستاسو دپاره بل څوک دعبادت لائق نشته | بیشکه تاسو ته دهغه ذات د طرفه نښې

مِّن رَّبِّكُمْ هَٰذِهِ نَاقَةُ اللَّهِ لَكُمْ آيَةً فَذَرُوهَا

دطرفه درب ستاسو نه | دا | اوښه دالله ده | دپاره ستاسو | یوه نښه | نو پرېږدئ دا اوښه

راغلی دی چې ستاسو رب دې | دا ستاسو دپاره د الله ﷻ د معجزې په طور یوه اوښه ده | نو دا پرېږدئی

تَأْكُلْ فِي أَرْضِ اللَّهِ وَلَا تَمَسُّوهَا بِسُوءٍ فَيَأْخُذَكُمْ

چې خوراك کوی | په زمکه دالله کښې | اومه رسوی دې ته | څه ضرر | کنې نو اوبه نیسی تاسو

چې دالله ﷻ په زمکه کښې خرېږی | اوپه بد نیت ورته لاس مه اوړئ | کنې په تاسو به

عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝ وَاذْكُرُوا إِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَاءَ مِن بَعْدِ عَادٍ

عذاب | دردناك | اویاد کړئ | کله چې | هغه جوړ کړئ تاسو | خلیفګان | روستو دعادیانو نه

دردناك عذاب راشی | اویاد کړئی چې تاسو ئې دعادیانو نه پس آباد کړئ

وَبَوَّأَكُمْ فِي الْأَرْضِ تَتَّخِذُونَ مِن سُهُولِهَا قُصُورًا

اوځائې ئې درکړو تاسوله | په زمکه کښې | چې جوړوئ | په هواره ددې کښې | ماڼئ

اوپه زمکه ئې داسې استوګن کړئ | چې په میدانونو کښې خانله ماڼئ جوړئی

وَتَنْحِتُونَ الْجِبَالَ بُيُوتًا فَاذْكُرُوا آلَاءَ اللَّهِ وَلَا تَعْثَوْا

اوکنئ تاسو | غرونه | دپاره دکورونو | نو یاد ګړئ تاسو | نعمتونه دالله | اومه پورته کیږئ

او په غرونه کښې خانله کورونه تراشئ | .... نودالله ﷻ نعمتونه یاد کړئ | او په مخ

فِي الْأَرْضِ مُفْسِدِينَ ۝ قَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا

په زمکه کښې | فساد کونکی | اووئیل | سردارانو | هغه | چې تکبرې کړې وو

دزمکې فساد (شرك او ګناهونه) مه کوئ | نودهغه دقوم مغرورو خلقو هغه خلقو ته

مِن قَوْمِهِ لِلَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا لِمَنْ آمَنَ

دقوم دهغه نه | هغه کسانو ته | چې کمزوری ګڼړلې شوی وو | هغه چاته | چې ایمان ئې راوړې وو

اوونیل چې کوم کمزوری وو اوایمان ئې قبول کړې وو | چې آیا ستاسو په دې

| مِّن رَّبِّهٖ | مُّرۡسَلٌ | صٰلِحًا | اَنَّ | اَتَعۡلَمُوۡنَ | مِنۡهُمۡ |
|---|---|---|---|---|---|
| دهغوی نه آیا تاسو ته معلومه ده اچې بیشکه صالح ﷺ اراليږلي شوی دی ا دطرفه درب خپل نه | | | | | |
| یقین دی چې صالح ﷺ دخپل رب طرفنه رسول راغلي دی ا ........ | | | | | |
| مُؤۡمِنُوۡنَ | بِهٖ | بِمَآ | اُرۡسِلَ | اِنَّا | قَالُوۡٓا |
| اوونیل هغوی ابیشکه مونږ ا په هغه پیغام سره اچې راليږلي شوی دی هغه اپه هغې سره اایمان راوړونکی یو | | | | | |
| هغوی اوونیل چې مونږ خودهغه په راوړی تعلیم باندې ایمان راوړی دی ا | | | | | |
| اٰمَنۡتُمۡ | بِالَّذِیۡٓ | اِنَّا | اسۡتَکۡبَرُوۡٓا | الَّذِیۡنَ | قَالَ |
| اوونیل ا هغه کسانو اچې تکبرنې کړې ووابیشکه مونږه ا په هغه څيز اچې ایمان راوړی تاسو | | | | | |
| نومغروره خلقو ورته اوونیل ا چې تاسو په کوم تعلیم ایمان راوړی دی ........ | | | | | |
| عَنۡ اَمۡرِ رَبِّهِمۡ | وَعَتَوۡا | النَّاقَةَ | فَعَقَرُوا | کٰفِرُوۡنَ | بِهٖ |
| په هغې ا کفر کونکی یو ا نو شله کړه هغوی ا هغه اوښه ا اونافرنی یې اوکړه ا دحکم درب خپل نه | | | | | |
| مونږ دهغې نه انکار کوو ا غرض دا چې هغوی د اوښې پښې پریکړې ا او دخپل رب دحکم نه ئې سرکشی اوکړه | | | | | |
| اِنۡ کُنۡتَ | تَعِدُنَآ | بِمَا | ائۡتِنَا | یٰصٰلِحُ | وَقَالُوۡا |
| اواونیل هغوی ا اے صالحه ا راوړه مونږ ته ا هغه عذاب ا چې نه تریروې مونږه ا که ئې ته | | | | | |
| او پیغمبر نه ئې اوونیل ا چې اې صالح ﷺ! تاچې به دکوم(عذاب)وعدې کولې هغه راوله اکه چرې ته | | | | | |
| جٰثِمِیۡنَ | فِیۡ دَارِهِمۡ | فَاَصۡبَحُوۡا | الرَّجۡفَةُ | فَاَخَذَتۡهُمُ | مِنَ الۡمُرۡسَلِیۡنَ |
| د رسولانو نه انواونیول هغوی لره ایرې زلزلې انوشوهغوی اپه کورونو خپلو کښې ا پرمخې مره پراته | | | | | |
| په رښتیاپیغمبر ئې ا نو په هغوی باندې سخته زلزله راغله ا او په خپلو کورونو کښې پړمخ پاتې شو | | | | | |

**قوله تعالی: قَالَ یٰقَوۡمِ اعۡبُدُوا اللّٰهَ**

**د صالح ﷺ د توحیدپیغام:-** د ابراهیم خلیل الله ﷺ نه اول د عربوچه کومې پخوانې قبیلې وې هم په دوی کښې ثمودیان هم ووچه د قوم عاد نه پس وو. د حجاز او شام په مینځ کښې وادی قری اود دې په اطرافوکښې د دوی داوسیدلو خایونه مشهوردی.

**د قوم ثمود د چینو استعمالولو نه ممانعت:-** نبی کریم ﷺ په کال نهم هجری کښې تبوك ته تلو نود هغوی په استوګنو اوکورونوباندې تیریدو. یو مقام وو چه حجرنوم ئې وو دلته د ثمودیانو کلې وو. کله چه حضور ﷺ اودهغوی صحابه دلته پړاؤ واچولو نوخلقو د دې چینونه اوبه څکلې کوم چه به ثمودیانو استعمالولې په دې اوبو سره ئې اوړه واغږل او کټوکښې ئې واچولې. نونبی کریم ﷺ حکم اوکړو چه کټونې واړونې او اخلې شوی اوړه اوښانوته ورکړنې.بیا حضور ﷺ د دې خاې نه لاړو. بیا حضور ﷺ یوې بلې چینې ته اورسیدوکوزشوکومه چه د ثمودیانو د څکلو چینه نه وه بلکه د ثمودیانو د اوښې د اوبو څکلو چینه وه. حضور ﷺ دې نه منع فرمائیلې وه چه هغوی دې عذاب شوی قوم باندې تیرشی څکه چه ماته خو ویره اوشی چه ثمودیان څنګه په عذاب کښې راګیرشوی وو چرې تاسو هم راګیرنه شئ په دې

وجه په دې چينه باندې مه حصارېږئ[1] او كه په حجر باندې هم چرته تيريدل وى چه د ثمودیانو د اوسيدو ځائ وونود الله ﷻ په وراندې زارى كوئ اوتيرشئ. كه زارى نه شئ كولې نو په هغه ځائ مه تيرېږئ ګنې په تاسو به هم هغه عذاب راشى. [2]

**د هلاكو شوؤ قومونو علاقو ته تګ نه دې پكار:**-په عزوۂ تبوك كښې خلق د اهل حجر طرف ته په تيزئ سره روان وو دې د پاره چه هلته كوز شى. حضورﷺ ته خبر اوشو نو آواز ئې اوكړو چه مونځ تيار دې ابى كبشه ؓ وائي چه زه حضرت ﷺ سره راغلم. د هغوىﷺ په لاس كښې يوه نيزه وه او فرمائيل ئې د داسې قوم طرفته مه ځئ په چا چه د الله ﷻ غضب شوې وى نو په دوى كښې يوسړى اووئيل چه يا رسول اللهﷺ مونږ خو دې خلقو ته په كتو حيرانيدو. حضورﷺ اوفرمائيل آيا ستاسو دې تعجب نه زيات د تعجب خبره زه تاسو ته واوروم. هم د تاسو نه يو سړې يعنى زه تاسو ته د غيبو يوه خبره اوروم كوم چه تاسو نه مخكښې وو اود تيروشوو نه علاوه راتلونكې خبرې هم درته اوروم. په دې وجه نيغ شئ او خپله اصلاح اوكړئ. كه په تاسو باندې هم عذاب راشى نو د الله ﷻ پرې څه پرواه كيدې شى او هغه قوم هم راتلونكې دې چه د خپلو نفسونونه به هيڅ هم اخوا نه كړې شى[3] مطلب دا چه كله حضورﷺ په حجر باندې تيريدو نو وئې فرمائيل چه د الله ﷻ نه معجزې او نښې مه غواړئ د صالح ؑ قوم هم غوښتې وه اودمعجزې په توګه هغوى ته ناقه يعنى اوښه ملاوشوې وه چه په يوه لار به راتله او په بله به تله. هغه خلقو د الله ﷻ د حكم نه سركشى اوكړه هغه اوښه ئې مړه كړه. هغې به يوه ورځ د چينې نه اوبه څكلې او بله ورځ به دې خلقود هغې پئ څكل. كله چه ئې هغه مړه كړه نود آسمان نه يو داسې تيز آواز راغلو چه ټول مړه شول.

**د قوم ثمود اخرى كس ابو رغال هم هلاک شو:**-دهغوى د قوم صرف يو سړې بچ شو هغه په دې وجه چه په دغه وخت كښې هغه په كعبة الله كښې دننه ووخلقو تپوس اوكړو يا رسول اللهﷺ! هغه سړې څوک وو؟حضورﷺ اوفرمائيل ابورغال. خوچه كله د حرم نه بهرشو نو هغه هم په عذاب كښې اخته شو او مړ شو.[4] (داحديث په صحاح سته كښې موجودنه دې).

ارشاددې چه د ثمود طرف ته مونږدهغوى يوقومى صالح ؑ پيغمبر ليږلې وو دټولو پيغمبرانو په شان د هغوى هم دغه دعوت اوتعليم ووچه اې خلقو ديو الله عبادت كوئ دهغه نه علاوه بل څوك هډو رب شته نه. ټول پيغبران هم دهغه دعبادت طرف ته دعوت وركونكى دى لكه چه فرمائى تانه وړاندې چه څومره رسولان ليږلې شوى دى دټولوطرف ته هم دغه وحى وه چه زه الله ﷻ واحد يم، صرف هم زما عبادت كوئ اوفرمائى چه په هر قوم كښې مونږرسولان ليږلى دى اوهغوى ټولو د توحيدتعليم وركولو اود شيطان د تابعدارئ نه ئې منع كوله [5]

**د قوم ثمود د صالح عليه السلام نه د معجزې مطالبه او داوښې قصه.**-اوفرمائى چه د الله ﷻ د طرف نه تاله نښه راغلې ده اوهغه نښه دا ناقه يعنى اوښه ده. هغه خلقو پخپله حضرت صالح ؑ ته سوال كړې ووچه هغوى ته يوه معجزه اوخودلې شى او درخواست دا ووچه د دې خاص غردكاڼى نه كوم چه مونږ بنايو يوه اوښه پيدا شى داغرپه مقام حجركښې ځان له يوكاڼې وو د كوم نوم چه كاتبه وو او چه هغه

---

[1] ) احمد:۱۱۷/۲وسنده صحيح، ابن حبان: ۶۲۰۳.

[2] ) احمد:۷٤/۲ دَ دې معنې روايت په صحيح بخارى كتاب الصلاة باب الصلاة فى مواضع الخسف:٤٣٣، صحيح مسلم: ۲۹۸۰، ابن حبان ۶۲۰۰، دلائل النبوه: ۲۳۳/۵ كښې موجود دې.

[3] ) احمد: /۲۳۱، مجمع الزوائد: ۱۹٤/۶.

[4] ) احمد:۲۹۶/۳، ابن حبان:۶۱۹۷حاكم:۳٤۰/۲.

[5] ) ۱۶/النحل: ۳۶.

اوښه د لسو میاشتو حمل هم لري او پښی هم ورکوی. حضرت صالح ﷺ د هغوی نه وعده اخستي وه چه که الله ﷻ د هغوی سوال قبول کړو نو هغوی به ایمان راوړی اوزما په وینا به عمل کوی. کله چه دا وعده د وعیداوشوه نوحضرت صالح ﷺ پاسیدو او دعائی اوکړه.کاڼړی ناڅاپی په خوزیدوشو او اوچودو او د هغې نه یوه اوښه راوتله د کومې په خیټه چه د بچی کیدو په وجه اخوا دیخوا د تلو حرکت کولو. د دې په کتلو سره د هغوی سردار جندع بن عمرو اود هغه ماتحتانو ایمان راوړلو اود ثمودیانو نورو اشرافو هم ایمان راوړلو چه ذواب بن عمرو او حباب د بت پجاری او رباب هغوی منع کړل اود جندع یو د تره خوئ شهاب نومې سړې هم چه د اشراف ثمود نه وو او اراده ئی کوله چه ایمان راوړی خود دې خلقو په وینا منع شو.هم د دې متعلق د ثمودیانو د مؤمنانو یو سړې مهوش وائی د کوم مطلب چه دا دې جندع د نبی دین طرف ته شهاب رابللې وو اوهغه د ایمان راوړلو اراده هم کړې وه خوآل حجر گمراهانو هغه د هدایت نه پس گمراه کړو. مطلب دا چه د اوښې بچې اوشواود یوې مودې پورې هغه په دوی کښې وه. د یوې چینې نه به یوه ورځ هغې اوبه څکلې او یوه ورځ به ئی ناغه کوله چه نور ځناور او خلق اوبه اوڅکی او هغه خلقو به د دې پښی څکل او چه څومره به ئی غوښتل د پئیو نه به نی خپل لوښی ډکول. لکه څنګه چه په یو بل آیت کښې ارشاد دې چه اوبه دهغوی په مینځ کښې تقسیم شوې وې کله به دې څکلې او کله به هغوی. نو فرمائی چه د اوبوڅکلو یوه ورځ مقرره د اوښې ده او یوه ستاسو. دې وادنی کښې چه به دا ځرن له تله نو په یوه لار به تله او په بله لار به راواوتله. دې د پاره چه تلوراتلوکښې هغوی ته تکلیف نه وی خکه چه اوبو څکلو سره به هغه ډیره چاقه او تازه شوه او هغې به ډیر مزیدار او رعب نه ډك اوښکلې شکل لرلو. ځناورو سره به چه خواکې تیریدله نو هغوی به ویریدل او تختیدل به. په دې حالت کښې څه موده تیره شوه اود قوم سرکشی زیاته شوه. تردې چه هغه خلقو اراده اوکړه چه دا اوښه قتل کړی چه هره ورځ د اوبوڅکلو حق ورته حاصل شی. دې ټولو کافرانود اوښې د قتل کولو اراده اوکړه.قتاده ﷺ وائی چه داچا قتل کړې وه ټول خلق هغه له لاړل ښځې اوماشومان هم چه دا قتل کړی. د ټولې ډلې د دې په قتل کښې حصه اخستل د دې آیت مبارك نه معلومیږی چه ﴿فَكَذَّبُوهُ فَعَقَرُوهَا فَدَمْدَمَ عَلَيْهِمْ رَبُّهُم بِذَنبِهِمْ فَسَوَّاهَا﴾ یعنی هغوی نبی دروغ اوګنړلواو اوښه نی قتل کړه نو الله ﷻ هم په هغه زمکه باندې هغوی هلاك کړل. اوفرمائی چه ثمودیانوته مونږ د اوښې معجزه ورکړه اودا د هغوی د سترګو غړولودپاره کافی وه.خوهغه ظالمانود ظلم نه کاروااخستلو. غرض دا چه داوښې قتل کولو نسبت ټولې ډلې ته کړې شوې دې چه په دې کار کښې د ټولولاس وو.

**د اوښې قتل او د قوم ثمود بد انجام::** امام ابوجعفر ﷺ اودتفسیرنور علماء دقتل سبب خودلو سره فرمائی چه یوه ښځه وه عنیزه نومې بوډئی اوکافره وه. دصالح ﷺ سره دهغې دښمنی وه دهغې ښانسته لونړه وې مال اودولت ورته حاصل وود هغې خاوند ذوآب بن عمرو د ثمودیانو په سردارانو کښې وو.او یوه بله ښځه صدقه بنت مهیا نومې چه دحسب نسب او مال اوجمال والا وه.دابوه کافره ښځه وه او خاوندئی د ثمودیانو یو مسلمان وو او دې ئې داسلام په وجه پریخودې وو. د اوښې قاتل سره دې دوارو وعدې کړې وې. صدقې یو سړې حباب نوم راوچت کړې ووکه اوښه دې مړه کړه نوزه به ستاشم هغه انکاراوکړو. بیا ئی د خپل تره خوئ مصدع ابن مهرج ته اووئیل نو هغه قبوله کړه او عنیزه بنت غنم قدار راوغوښتلو. هغه شین سترګې وروکې قد والا سړې وو خلقو به هغه ته ولدالزنا وئیل او هغه به ئی دخپل پلار سالف خوئ نه ګنړلو د دې سړی نوم ضیان وو اود چا چه په حقیقت کښې دا هلك وو دهغه مور په دې وخت کښې د سالف ښځه وه دې ښځې د اوښې قاتل ته وئیلې وو چه زما کومه یوه لور غوارې د دې خدمت په بدله کښې نی حاصلولې شې چه اوښه قتل کړې. نو قدار بن سالف او مصدع بن مهرج د ثمود غونډه ګانو سره چل ول اوکړو او اووه سړی هغه سره شو. دغه شان دا ټول

يوخایٔ شو او نهه سرِی شو. نو الله ﷻ ارشاد اوفرمائيلو چه په ښارکښې نهه سرِی وو چه د اصلاح په خایٔ ئې فساد ته ملاتړلې وه (١) اودا د خپل قوم بدمعاشان وو. دې کافرانو د کافرانو د قبيلې خلق هم خان سره يوخایٔ کړی وو. دا ټول لاړل اود اوښې انتظارئې کولو. کله چه دې اوبه اوڅکلې اوواپس شو نوقدار دهغې په لارکښې د يو غرشاته پټ ناست وو اومصدع د بل غر شاته وو. اوښه مصدع سره تيره شوه هغه يوغشې اوويشتله او په پښه باندې اولګيدله. بنت غنم عنيزه راوتله اوخپله د ټولونه ښائسته لورئې راوستله اود قدار او د هغه د ډلې په مخکښې د خپلې لور د ډير زيات حسن مظاهره اوکړه. قدار په دې پيش کش باندې متاثر شو او توره ئې راوێستله اود اوښې پښې ئې پريکړې هغه په زمکه باندې راپريوتله. هغې خپل بچی ته په کتو يوه چغه اوويستله لکه چه هغه ئې خبرولوچه اوتښتی. بيا قاتل هغه په سينه باندې په نيزه اووهله او بيائې د هغې مرئې پريکړه.دهغې بچې يو غرطرف ته اوتښتيدواويو غونډئې ته اوختلو او چغه ئې اووهله لکه چه وائی اې زما ربه زما مور چرته ده؟ وائی چه درې خل هغه چغې اووهلې او بيا په هغه کاڼړی کښې ورك شو. دا هم ونيلې کيږی چه خلقو هغه پسې منډې وهلې او هغه ئې هم قتل کړو. والله اعلم. دا خبر چه کله صالح عليه السلام ته اورسيدلونو هغه هغه خایٔ ته راغلو چه خلق راغونډشوی وو اوښې ته په کتلوسره په ژړا شو او وئې ونيل (د الله ﷻ په قول) تاسو درې ورځې نور هم ژوندی اوسيږئی.

**د اوښې دقتل نه پس د صالح عليه السلام د قتل ارادا کول او عذاب نيول:-** د اوښې قتل د چارشنبې په ورځ شوې وو کله چه شپه شوه نودې نهوکسانودحضرت صالح عليه السلام د قتل هم اراده اوکړه او مشوره ئې اوکړه که چرې دا رښتونې دې او درې ورځې پس مونږ مره کيږو نود خان نه اول دې ولې اونه ليږو. اوکه چرې دروغژن دې نودې به هم اوښې سره اوليږو.د الله ﷻ قول دې چه دې خلقو په خپلو قسمونو خپله وعده مضبوطه کړه چه صالح عليه السلام اود هغه بې بې به قتل کړو اود هغه اولياؤ ته به اووايو چه مونږ ته څه پته ده مونږ دهغه د قتل په وخت کښې د سر نه موجود نه وو چه قاتل مو پيژندلې وو مونږ رښتيا خبره کونکی يو. هغوی چلول کولو او مونږ چه په کوم چلول کښې وو د هغه دوی ته هډو پته نه وه. ګوره د مکارانونتيجه څنګه ده. کله چه دې خلقو اراده اوکړه اود الله ﷻ د نبی د قتل کولو د پاره شپې راغله نود الله ﷻ په حکم سره کاڼړی وريدل شروع شو. د زيارت ورځ د مهلت اولنئی ورځ وه. په هغه ورځ د دغه خلقو مخونه قدرتی زيړ شوی وو لکه څنګه چه صالح عليه السلام ونيلې وو او په دويمه ورځ د جمعې سره شو اود دنيا د نفعې دريمه ورځ د خالې وه په هغه ورځ د ټولو مخونه تورشو. د اتوار ورځ شوه نودې خلقو خوشبو لګولې وه اود عذاب انتظار ئې کولو چه معلومه نه ده چه نن به مونږ سره څه کيږی اود عذاب به څه صورت وی. نمر راوختلو اود آسمان نه يوه چغه هم راغله اود پښو لاندې يوه سخته زلزله پيداشوه روحونه ئې اووتل او ټول ناڅاپی مړه شول. ټول خلق په خپلو خپلو کورونوکښې مړه پراته وو.

**د ثموديانو د يو ښځې قصه:-** وروکې لوئ ښځې اوسرِی ټولوکښې څوك هم بچ نه شو صرف يوه ښځه بچ شوه چه کلبه بنت السلق نومې وو دا ډيره کافره او سخته دښمنه وه. هغې عذاب اوليدلو اود هغې پښوته د تيزو تلو طاقت ورکړې شو يوې قبيلې له لاړه اوچه څه ئې ليدلې وو هغه ئې بيان کړل او ټول قوم چه په کومه تباهئی سره هلاك شو هغه ئې ذکر کړل. بيا ئې د څکلو د پاره اوبه اوغوښتلې اوبه څکلو سره مړه شوه(٢) د ثموديانو د قوم په خلقو کښې صالح عليه السلام اود هغه امتيانونه سوابل څوك بچ نه شو. ددې قوم يو سړې ابورغال وو چه په دغه وخت کښې مکه کښې وو هغه لږساعت محفوظ پاتې شو

---

(١) ٢٧/النمل:٤٨.

(٢) تفسير عبدالرزاق: ٩١٦، مصنف عبدالرزاق: ١١/٤٥٣-٤٥٥ ح٢٠٩٨٩.

خوچه د څه ضرورت دپاره دمکې نه بهر اووتلو نود اسمان نه په هغه باندې یو کانړې راپریوتلو او هم هلته مردار شو. وائي چه دا ابورغال د طائف د اوسیدونکي قبیلې ثقیف جداعلی وو. [١] نبی کریم ﷺ چه کله د ابورغال په قبر تیریدو.نو وئې فرمائیل چه تاسو ته معلومه ده.چه دا د چا قبر دې دا د ثمود د یوسړي ابورغال قبردې چه په حرم کښې وو، حرم دې د عذاب نه منع ساتلې ووکله چه د حرم نه بهر شو نو عذاب سره مخ شو اودلته خښ کړې شو. ده سره د ده د سرو زرو لختة هم خښه ده. خلقو په تورو سره د هغه قبر اوکنستلو اوهمسا ئې راؤویستله.[٢]

| فَتَوَلّٰى | عَنْهُمْ | وَقَالَ | يٰقَوْمِ | لَقَدْ |
|---|---|---|---|---|
| نواوګرځیدو | دهغوئ نه | اووې وئیل | ائې قومه زما | بیشکه چې |
| او صالح ﷺ ترې نه یو طرفته شو | | او ورته ئې اووئیل چې ائې زما قومه | | |

| اَبْلَغْتُكُمْ | رِسَالَةَ | رَبِّيْ | وَنَصَحْتُ | لَكُمْ | وَلٰكِنْ |
|---|---|---|---|---|---|
| رااورسوؤ ماتاسوته | پیغام | درب زما | اونصیحت اوکړوما | تاسوته | خو لیکن |
| ماخوتاسوته دالله ﷻ حکمونه رارسولي وو | | | اوستاسوخیرخواهي مې لټولې وه | | خو |

| لَا تُحِبُّوْنَ | النّٰصِحِيْنَ ۝ |
|---|---|
| نه خوښوئ تاسو | نصیحت کونکی |
| ستاسوهډوخیرخواه خلق خوښ نه وؤ | |

**قوم ثمود ته د صالح علیه السلام نداء حسرت:**: دا د صالح ﷺ د طرف نه قوم ته تهدید کیږي هغه چه دهغه مخالفت او دښمنی اختیارولو په وجه هغوی هلاك کړې شو نو هغه دې مړو ته خطاب کولو لکه چه هغوی اوری. د بخاری او مسلم شریف نه هم دا ثابت دی چه کله نبیﷺ د بدر په کفارو غالب راغلو نو درې ورځې ئې هلته قیام کړې وو بیا د شپې د هغه خایه لاړل او په قلیب (ترخاه) باندې حصارشو دا د قریشودکفارو د خښیدو ځائې وو. حضورﷺ دې مدفن ته په کتو اوفرمائیل اې ابوجهل بن هشام، اې عتبه، اې شیبه اواې فلانکی اواې فلانکی آیا د رب وعده پوره کیدونکې تاسو اولیده؟ ما د خپل رب وعده همیشه پوره اولیدله. نوحضرت عمر﷜ عرض اوکړو یارسول اللهﷺ! تاسو مړوسره خبرې کوئی؟ نو هغویﷺ اوفرمائیل په اللهﷻ قسم تاسو د دوی نه زیات نه شې اوریدلې البته اوریدو سره هغوی جواب نه شی ورکولی([٣])په سیرت کښې دی چه حضورﷺ هغوی ته وئیلې وو چه د نبی اکرم ﷺ په قبیله کښې تاسو ډیر خراب خلق وئی. د بهر خلقو خو زما تصدیق کولو او تاسو زما د قبیلې کیدو سره زما تکذیب کولو. د مدینې خلقو ماته پناه راکړه او تاسو د خپل وطن نه اوویستم. تاسو زما د قتل اراده اوکړه اونورو زما امداد اوکړو([٤])دنبی اکرم ﷺ د پاره تاسو ډیره خرابه قبیله ثابته شوئې. دغه شان صالح ﷺ هم خپل قوم ته فرمائی چه ما د اللهﷻ پیغام تاسو ته دراورسولو ستاسو د خیرخواهئ خوتاسو د دې نه فائده اوچته نه کړه ځکه چه تاسو حق خبره هډو خوښوله نه. د دې د پاره ارشاد دې چه ما تاسو ته نصیحت کړې وو خو نصیحت خو ستاسو خوښ نه وو. یو مفسر ذکر کړې دې چه هر یو نبی

---

[١] ) ایضًا.
[٢] ) ابوداؤد کتاب الخراج باب نبش القبور العادیة یکون فیها المال: ۳۰۸۸، ابن حبان: ۶۱۹۹ ،بیهقی:۱۵۶/٤ )
[٣] ) صحیح بخاری کتاب المغازی باب قتل ابی جهل: ۳۹۷۶، صحیح مسلم: ۲۸۷٤.
[٤] ) ابن هشام:۲۹۲/۲.

د چا امت چه هلاك شوي دي هغه به حرم شریف ته راتلو او قیام به نی کولو. والله اعلم.

**د هود علیه السلام او صالح علیه السلام ته حج ته راتلل:**: د ابن عباس ﷺ نه روایت دي چه د حج په زمانه کښې حضورﷺ کله وادی عسفان نه تیریدو نو ونې فرمائیل اې ابوبکرا دا کوم یو مقام دی؟ حضرت صدیق اکبرﷺ جواب ورکړو دا وادی عسفان ده. حضورﷺ اوفرمائیل چه صالح او هود علیهم السلام په اوښه سواره په یوه زمانه کښې په دې ځائ تیرشوی وو د کومو واګې چه د کهجورو د رسو وې، د کمبلو ته بندونه وو، د پوستین خادرونه وو او لبیك ویونکي د بیت عتیق د حج د پاره تلل.[1]

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَلُوطًا | إِذْ | قَالَ | لِقَوْمِهِ |
| اواولیږ ولوط | یادکړئ کله چې | اووئیل هغه | قوم خپل ته |
| اودلوط ﷺ واقعه یاده کړه اچې کله نې قوم ته اووئیل | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَتَأْتُونَ | الْفَاحِشَةَ | مَا سَبَقَكُمْ | بِهَا | مِنْ أَحَدٍ |
| آیا تاسو راځئ | ادبې حیایئ کارته | چې نه دې رومبې شوې ستاسو نه | په هغې کار | هیڅوك |
| چې آیاتاسو دداسې بې شرمئ کار کوئ اچې ستاسو نه مخکښې هیڅ یو | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِنَ الْعَالَمِينَ ۝ | إِنَّكُمْ | لَتَأْتُونَ | الرِّجَالَ | شَهْوَةً |
| د خلقونه | ابې شکه تاسو | خامخا ورځئ | نارینوته | په شهوت سره |
| مخلوق نه دې کړې / آیا تاسو خپل شهوت د هلکانونه پوره کوئ | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| مِنْ دُونِ النِّسَاءِ | بَلْ أَنْتُمْ | قَوْمٌ | مُسْرِفُونَ ۝ |
| په ځائې دښځو | بلکه یئ تاسو | یوقوم | دحد نه اوړیدونکې |
| په ځائې دښځو / ریښتیادا ده چې تاسو دحدنه ډیرواندې تیرشوی یئ / نو | | | |

**قوله تعالی:**: أَتَأْتُونَ الْفَاحِشَةَ

**د قوم لوط خراب کار:**- او هغه وخت یاد کړه چه مونږ لوط ﷺ لیږلې وو. لوط ابن هاران بن آزر دې او د ابراهیم خلیل الله ﷺ وراره دې. ابراهیم ﷺ سره هغه هم ایمان راوړې وو اود شام زمکې ته نې هغه سره هجرت کړې وو. اللهﷻ هغه اهل سدوم ته لیږلې وو. هغه اهل سدوم د اللهﷻ طرف ته رابلل، امربالمعروف او نهی عن المنکرئی کول.

**د قوم لوط عمل دده د قوم نه وړاندې بالکل نه وو:**- هغه قوم داسې فحش او خراب کارکولو چه د آدم ﷺ نه واخله تراوسه پورې د هغوی نه علاوه بل هیڅ چا نه ووکړې. هغوی به ښځې پریخودلې او سره له به راتلل. دا څیز تراوسه پورې د چا په زړه کښې هم نه وو تیرشوې او بنیادم د دې تر دغه وخت پورې عادت نه وو. خلیفه ولید بن عبدالملك اموی بانئ جامع دمشق وئیلې که اللهﷻ د قوم لوط قصه نه ذکرکوله نوزما د دې خبرې یقین هم نه کیدو چه یوسړې بل سړی سره داسې کار کولې شی. لوط ﷺ هغوی ته فرمائیل اللهﷻ خو ستاسودپاره ښځې پیداکړی دی دا ستاسو ډیرزیاتې او لوئ جهالت دې د کوم څیز چه کوم محل نه دې تاسو هغه د هغې محل جوړونې. بیا په دویم آیت کښې هغوی ته فرمائي ګورئ دا ټولې ښځې دی ټولې زما لونړه دی کومې سره چه غواړئ رشته کولې شئ.[2] خو دې خلقو

[1] احمد: ۲۳۲/۱، مجمع الزوائد: ۲۲۳/۳.
[2] ۱۵/الحجر: ۷۱.



ونیل چه لوط ! تاته خومعلومه ده چه ستا د دې دنیا او جهان د لونړو سره زمونږ هیڅ کارنشته او زمونږ چه کوم غرض دې تاته معلوم دې. (۱)

**قوم لوط به خپل حاجت د نارینه نه او زناناؤ به دزناناؤ ن پوره کولو:**-مفسرینو ذکر کړې دې چه سړو به خپل حاجت د سړونه پوره کولو اودغه شان به ښځو هم خپل حاجت د ښځونه پوره کولو اود دې د پاره هغوی مجبوره هم وې.

| وَمَا كَانَ جَوَابَ | قَوْمِهٖٓ | اِلَّآ اَنْ | قَالُوْٓا | اَخْرِجُوْهُمْ | مِّنْ قَرْيَتِكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| اونه وو جواب | دقوم دهغه | مگر دا | چې | ونیل نې | اوباسئ دوئ | دکلي خپل نه |
| قوم سره ددې نه بغیر بل جواب نه وو ا چې خپل مینځ کښې ئې اوونیل ا دوئ دخپل کلي نه اوباسئ | | | | | |

| اِنَّهُمْ | اُنَاسٌ | يَّتَطَهَّرُوْنَ |
|---|---|---|
| بیشکه چې دوئ | داسې خلق دی | چې خان پاک ساتی |
| خکه چې دوئ خپل خان پاک ساتل غواړی | | |

**قوله تعالیٰ:: وَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖٓ**

**دقوم لوط ردعمل:** ددې په جواب کښې دقوم جواب دا ووچه هغوی پخپل مینځ کښې ونیل چه لوط(ﷺ) دکلي نه اوباسئ خو اللهﷻ لوط ﷺ ژوندې او سلامت دهغه ځائ نه اوویستلو اوهغه کافران ئې د ذلت په مرگ مړه کړل. د اللهﷻ ارشاد دې ﴿وَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖٓ﴾ هغوی د عیب نه بغیر د عیب نسبت اوکړو او د لوط ﷺ هغه پاك ژوندون ئې عیب اوخودلوچه هغه ډیر پاك گرځي. یا دا چه په لوط ﷺ اود هغوی په خلقو کښې دا عیب دې چه هغوی د ادبار رجال او ادبار نساء (یعنې دسړودشاد طرف نه راتلو او د ښځو دشاد طرف نه راتلو) نه بچ کیږی. دا د ابن عباس ؓ قول دې.

| | فَاَنْجَيْنٰهُ | وَاَهْلَهٗٓ |
|---|---|---|
| | نوبچ کړو مونږ هغه | اوکوروالادهغه |
| | نومونږ هغه نه اودهغه کور والاته نجات ورکړو | |

| اِلَّا امْرَاَتَهٗ | كَانَتْ | مِنَ الْغٰبِرِيْنَ | وَاَمْطَرْنَا | عَلَيْهِمْ |
|---|---|---|---|---|
| مگرنه ښځه دهغه | وه هغه | دروستو پاتې کیدونکونه | اواوروؤ مونږ | په هغوئ باندې |
| خوصرف دهغه ښځه بچ نه شوه ا خکه چه په روستو پاتې کیدونکو کښې شامله وه ا اومونږ به هغوئ باندې | | | | |

| مَّطَرًا | فَانْظُرْ | كَيْفَ كَانَ | عَاقِبَةُ | الْمُجْرِمِيْنَ |
|---|---|---|---|---|
| باران | نو اوگوره | څنگه شو | انجام | دمجرمانو |
| دکانړوباران اوورلو ا نواوگورئ چې دمجرمانو څه انجام شو | | | | |

**قوله تعالیٰ:: لَتَاْتُوْنَ الرِّجَالَ شَهْوَةً**

**په اغلام بازئی (دنر نرسره زنا) کښې د فقهاؤ موقف:**-اللهﷻ فرمانی چه مونږ لوط ﷺ اود هغه کورنئ بچ کړه او هغه دکورنئ نه علاوه بل چا ایمان نه وو راوړې لکه چه اللهﷻ فرمانی چه مونږ هغه خلق د

(۱) ۱۱/هود:۷۹.

عذاب د ځایٔ نه بهرکړل چه ايمان ئې راوړې وو. اود يوکورنه علاوه بله کورنئي خو وه نه خود هغه ښځه بچ نه کړې شوه ځکه چه هغې ايمان نه وو راوړې. هم د قوم په دين وه او د لوط ﷺ خلاف به ئې د قوم سره سازباز کولو. د لوط ﷺ په خدمت کښې د ځوانانو په شکل کښې د فرښتو راتلل اود قوم دې ته خبريدل دا ټول د دې ښځې دجاسوسئي په سبب وو. الله ﷻ لوط ﷺ ته حکم ورکړې وو چه د شپې په وخت کښې خپله کورنئي واخله او اوځه اودا ښځه مه پوهه کوئې اودا د ښار نه مه بوځئې. بعضې دا هم وائي چه هغه هم لوط ﷺ سره روانه شوې وه او وتلوسره کله چه په قوم عذاب نازل شو نو د همدردئي نه به ئې شاشاته کتل نو پخپله هم په عذاب کښې راګيره شوه. خو دا روايت ډير صحيح دې چه د ښار نه نه وه وتلې اولوط ﷺ هغې ته خبر هم ورنه کړو. په دې وجه ارشاد دې چه د لوط ﷺ ښځه پاتې شوه او هغه په روستو پاتې شوو کښې وه.

دغه تفسيربااللازم هم دې﴿وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ مَّطَرًا﴾دا آيت ددې قول تفسيرکوی چه ﴿وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ حِجَارَةً مِّن سِجِّيلٍ﴾اوهم ددې دپاره ئې اوفرمائيل چه آخرکار دمجرمانو نتيجه اوګوره چه دګناه په کولو او د تکذيب په سبب ځنګه سزا ورته ملاؤشوه.

**د لوطی سزا او عالمانو اقوال:-** ① امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي چه اغلام باز يعنی هلك چه لواطت کونکې د اوچت ځایٔ نه راګذار کړئی بيا په ده باندې کاڼړی راوره وه چه د لوط ﷺ قوم سره هم دا سزا هم په دې صورت کښې اختيار شوې وه. ② او بعضې علماء وائي چه رجم ئې کړئی که واده کړې وی اوکه ناواده کړې. د امام شافعی رحمه الله هم د يو روايت په بنا باندې هم دغه قول دې. ③ د ابن عباس رضی الله عنه نه روايت دې چه حضور ﷺ فرمائيلي چه ځوك تاسو د لوط ﷺ د قوم په عمل کښې اووينئي نو فاعل او مفعول دواړه قتل کړئی([1]) ④ بعضو وئيلي چه هغوی په مثال د زنا کونکو دی که واده کړې وی نو رجم ئې کړئی ګنی سل کوړې ورکړئی. ښځو سره اغلام کول(يعنی شانه راتګ کول) هم لواطت دې اودا هم د امت په اجماع سره حرام دی. د دې خلاف صرف يو قول شاذ دې اود دې په ممانعت کښې د حضور ﷺ نه ډير احاديث روايت کړې شوی دی. په سورة بقره کښې په دې باندې تفصيل تيرشوې دې

**د لوطی سزا د اوچت ځائي نه راغورځول دی**

**مسلک حنفی:-** لکه ځنګه چه حافظ ابن کثير رحمه الله فرمائيلی دی هم دغه د امام ابوحنيفه رحمه الله مذهب دې چې دې به غر وغيره اوچت ځائي ته اوخيژولې شي او دهغه ځائي نه راګزار کړې شي او بيا به د پورته نه په کاڼړو اوويشتې شي (معارف القرآن تفسير مفتی اعظم محمد شفيع رحمه الله ۲/۲۱۷).

| وَإِلَىٰ مَدْيَنَ | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| او مدين والو ته | | | | | |
| .........اومدين خلقو ته | | | | | |
| أَخَاهُمْ | شُعَيْبًا | قَالَ | يَٰقَوْمِ | اعْبُدُوا اللَّهَ | مَا لَكُمْ |
| رور دهغوئ | شعيب | اوونيل هغه | اے قومه زما | بندګي کوئ دالله | نشته تاسولره |
| مونږ دهغوی رور شعيب اوليږلو | هغه ورته اوونيل چې اے زماقومه صرف دالله ﷻ عبادت کوئ ستاسودپاره | | | | |

[1]) ابوداؤد كتاب الحدود باب فيمن عمل عمل قوم لوط: ٤٤٦٢، وسنده حسن، ترمذی: ١٤٥٦، ابن ماجه: ٢٥٦١، احمد: ١/٣٠٠، دارقطنی: ٣٤١، بيهقی: ٨/٢٣٢، حاكم: ٤/٣٥٥ امام حاكم او ذهبی دا روايت صحيح الاسناد ګنړلې دې.

| مِّنْ اِلٰهٍ | غَيْرُهٗ ؕ | قَدْ جَآءَتْكُمْ | بَيِّنَةٌ | مِّنْ رَّبِّكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| هیڅوك معبود | بغیر دهغه نه | بیشکه راغلي دي تاسوته | نښي ښکاره | دطرفه درب ستاسونه |
| دهغه نه سوا بل معبود نشته ..... تاسوته دخپل رب دطرفنه ښکاره دلیل راغلي دي | | | | |

| فَاَوْفُوا | الْكَيْلَ | وَالْمِيْزَانَ | وَلَا تَبْخَسُوا | النَّاسَ | اَشْيَآءَهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| نو پوره ورکوئ | پیمانه | اوتول | اوکم مهٔ ورکوئ | خلقو له | اخیزونه دهغوئ |
| نو پیمانه اوتول پوره پوره ورکوئ او خلقو ته دهغوئ په خیزونو کښي کمي مه کوئ | | | | | |

| وَلَا تُفْسِدُوْا | فِي الْاَرْضِ | بَعْدَ اِصْلَاحِهَا ؕ | ذٰلِكُمْ | خَيْرٌ |
|---|---|---|---|---|
| اوفساد مهٔ کوئ | په زمکه کښي | اروستو داصلاح دهغي نه | دا کار | غوره دي |
| او اصلاح نه پس په زمکه باندي فساد مه خوروني .........دا ستاسودپاره بهتره ده | | | | |

| لَّكُمْ | اِنْ كُنْتُمْ | مُّؤْمِنِيْنَ ۚ |
|---|---|---|
| ستاسو دپاره | که يئ تاسو | مومنان |
| که چري تاسو يقين کوئ | | |

**قوله تعالى:: قَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ**

**شعیب ؑ خپل قوم ته خطاب:**-د شعیب ؑ اصلی نوم په سریانی ژبه کښي یثرون وو. د مدین لفظ د قبیلې دپاره هم وئیلی شی او د ښار په معنی کښي هم استعمال شوي دي اودا د مقام معان سره نیزدي دي کوم چه د حجاز په لارکښي دي. لکه چه اللّٰه ﷻ فرمائیلی کله چه هغه (موسیٰ ؑ) د مدین چینې ته اورسیدو نو هلته ني داسي خلق اولیدل چه د دي چینې نه ني اوبه اورلې[1] دي نه اصحاب ایکه مراد دی د کوم چه به ان شاء الله زر ذکر کولې شی.د اللّٰه ﷻ ارشاد دي چه حضرت شعیب ؑ وئیل اي قومه د ا لله تعالی عبادت کوئی د هغه نه سوا بل څوك الله نشته.د ټولورسولانو به هم دغه تبلیغ وو. په تاسو ستاسو د رب د طرف نه د اللّٰه ﷻ حجت پوره شوي دي. شعیب ؑ به د خلقو په معاملاتی کارونوکښي هدایت کولو چه خپل ناپ تول صحیح ساتئی خلقو ته نقصان مه رسونی. د نورو په مال کښي خیانت مه کوئی. په ناپ تول کښي په غلاسره کمي کولوسره دهوکه مه کوئی. لکه چه اللّٰه ﷻ فرمائي په ناپ تول کښي کمي کونکود پاره لوئ هلاکت دي[2] دا ډیره زبردسته تنبیه ده. بیا اللّٰه ﷻ د شعیب ؑ باره کښي ذکر فرمائي چه هغه قوم ته وائي (شعیب ؑ ته خطیب الانبیاء وائی ځکه چه هغه به په ډیرو فصیحو اوبلیغو الفاظوکښي خبره کوله او استعاري به نی استعمالولې اوچه نصیحت به نی کولو نو کنایة به نی کولو).

| وَلَا تَقْعُدُوْا | بِكُلِّ صِرَاطٍ | |
|---|---|---|
| اومهٔ کینئ تاسو | په هره لار کښي | |
| ..چي خلق ویروئ | | |

[1] ) ۲۸/القصص: ۲۳.
[2] ) ۸۳/المطففین:۱.

| تُوْعِدُوْنَ | وَتَصُدُّوْنَ | عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ | مَنْ | اٰمَنَ | بِهٖ |
|---|---|---|---|---|---|
| چي اویروئ خلق | اومنع کوئ | دلارې | دالله نه | اهغه څوك | چې ایمان ني راوړوا په هغه |

او چاچې ایمان راوړې دې هغوئ دالله ﷻ دلارې نه منع کوئ..............

| وَتَبْغُوْنَهَا | عِوَجًا | وَاذْكُرُوْٓا | اِذْ | كُنْتُمْ | قَلِيْلًا | فَكَثَّرَكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اولټوئ هغې لره | کوږوالي | اویاد کړئ | کله چې اوئ تاسو | لږ | | نو زیات ني کړئ تاسو |

اوپه هغې کښې کوږوالي لټوئ | اویاد کړئ چې مخکښې تاسو لږ وئ | نوهغه ډير کړئ

| وَانْظُرُوْا | كَيْفَ كَانَ | عَاقِبَةُ | الْمُفْسِدِيْنَ ۝ | وَاِنْ كَانَ | طَآئِفَةٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| اواوګورئ | څرنګې وو | انجام | دفسادکونکو | اوکه چرې وي | یوه ډله |

اوتاسو اوګورئ چې د(پخوانو) فسادیانو څه انجام شو | اوکه تاسو کښې یوې ډلې

| مِّنْكُمْ | اٰمَنُوْا | بِالَّذِيْٓ | اُرْسِلْتُ | بِهٖ | وَطَآئِفَةٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| ستاسو نه | چې ایمان راوړې | په هغه څیز | چې رالیږلې شوې یم زهٔ | په هغې سره | اوبله ډله |

په هغه تعلیم ایمان راوړې دې | کوم چه ماته راکړې شوې دې | او بلې ډلې

| لَّمْ يُؤْمِنُوْا | فَاصْبِرُوْا | حَتّٰى | يَحْكُمَ اللّٰهُ | بَيْنَنَا | وَهُوَ |
|---|---|---|---|---|---|
| ایمان رانوړې | نو صبر کوئ | ترهغې | چې فیصله اوکړي الله | په منځ زمونږ کښې | اوهغه |

پرې نه دې راوړې | نولږ صبر اوکړئ چې الله ﷻ پخپله زمونږ په مینځ کښې فیصله اوکړي | اوهغه

| خَيْرُ | الْحٰكِمِيْنَ ۝ |
|---|---|
| بهتره | فیصله کونکې دې |

ډیرښهٔ فیصله کونکې دې

**قوله تعالی:: وَلَا تَقْعُدُوْا بِكُلِّ صِرَاطٍ**

**د شعیب ﷺ خپل قوم ته وعظ:-** شعیب ﷺ په خلقو ته په حسي او معنوي توګه باندې لارې شوکولو نه منع کول.یعنی په لاروکښې مه کینئ چه خلق ویرولو سره د هغوی نه څه حاصل کړئ اوکه خلق مال درنه کړي نو هغوی له د قتل کولو دهمکئ ورکوئ.دې بدمعاشانو به چونګې وصول کولو په نوم باندې خلق لوټ کول. او چه څوك به شعیب ﷺ له د هدایت د پاره راتلل هغوی به ئې منع کول او نه به ئې راپرېخودل.دا دویم قول د ابن عباس رضی الله عنه دې. ړومبې قول ډیر واضح او سیاق عبارت ته نیزدې دې څکه چه د صراط معنی لار ده اود ابن عباس رضی الله عنه مفهوم خو الله ﷻ پخپله په دویم آیت کښې ارشاد فرمائیلې دې چه څوك ایمان راوړي تاسو د هغوی لار وهئ او ماله راتلونکي نیکوکاران منع کوئ او په غلطو لارو ئې اړوئ. اې زما د قوم خلقوا شکرکوئ چه تاسو په شمیرکښې کم وئ کمزوري وئ بیا الله ﷻ ستاسو شمیرزیات کړوستاسو اجتماعي طاقت ئې زیات کړو. دا په تاسو د الله ﷻ احسان دې او عبرت حاصل کړئ چه په دنیاکښې او قرون ماضیه کښې ګناهګارانو او فسادیانو په کوم عذاب او سزا سره مخ کړل څکه چه هغوی د الله ﷻ نه په سرکشئ کښې ډیر بهادران شوي وو اوکه به

تاسوكښې يوه ډله زما په تبليغ باندې ايمان راوړي او دويمه ډله ايمان نه راوړي نو انتظار كوه او د صبر نه كارواخلى ترهغه وخته پورې چه الله ﷻ زما او ستاسو په مينځ كښې خپله فيصله اوكړي. هغه د ټولونه ښه حاكم او فيصله كونكې دې. حسن عاقبت هم د الله ﷻ نه ويريدونكو ته حاصل دې او كافران به هلاكت سره مخ كيږي.

الحمدلله

د تفسيرابن كثير

د اتمې سپارې

ترجمه مكمل شوه

| قَالَ | الْمَلَأُ | الَّذِيْنَ | اسْتَكْبَرُوْا | مِنْ قَوْمِهٖ | لَنُخْرِجَنَّكَ |
|---|---|---|---|---|---|
| اووئيل | سردارانو | هغو | چې تكبرئې كړې وو | دقوم دهغه نه | چې خامخا به مونږ اوباسو تا |
| (په دې خبره) دهغه دقوم متكبره خلقو اووئيل | .................چې مونږ به تا (اې شعيبه) | | | | |

| يٰشُعَيْبُ | وَالَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | مَعَكَ | مِنْ قَرْيَتِنَآ | اَوْ لَتَعُوْدُنَّ |
|---|---|---|---|---|---|
| اے شعيب | او هغه كسان | چې ايمان ئې راوړې دې | ستا سره | دكلى زمونږه | يا به واپس راځئ تاسو |
| او كوم كسان چه تاسره مومنان دى ددې خپل كلى نه بهر اوباسو | ..........اويا به | | | | |

| فِيْ مِلَّتِنَا | قَالَ | اَوَلَوْ | كُنَّا | كٰرِهِيْنَ | قَدِ افْتَرَيْنَا |
|---|---|---|---|---|---|
| په ملت زمونږ كښې | اووئيل هغه | ايا اگر چې | يو مونږه | نارضا | مونږه اوتړو |
| زمونږ ملت ته واپس راگرځئ! شعيب ﷺ ورته اووئيل اگر كه مونږ په دې ناراضه يو | بيا خو به مطلب دا | | | | |

| عَلَى اللّٰهِ | كَذِبًا | اِنْ عُدْنَا | فِيْ مِلَّتِكُمْ | بَعْدَ |
|---|---|---|---|---|
| په الله باندې | دروغ | كه واپس راغلو مونږه | په دين ستاسو كښې | پس دهغې نه |
| وى چې مونږ په الله ﷻ باندې دروغ تړلى دى | كه ستاسو مذهب ته واپس راشو | د دې باوجود چې | | |

| اِذْ نَجّٰىنَا | اللّٰهُ | مِنْهَا | وَمَا يَكُوْنُ | لَنَآ | اَنْ نَّعُوْدَ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې خلاصې راكړې دې مونږ له | الله | ادهغې نه | او نۀ ښائيږى | مونږ له | چې واپس لاړ شو |
| الله ﷻ مونږ ته د هغې نه نجات راكړې دې | او كيدې نشى چه مونږ هغې (دين) ته واپس شو | | | | |

| فِيْهَآ | اِلَّآ | اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ | رَبُّنَا | وَسِعَ | رَبُّنَا | كُلَّ شَيْءٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په هغې كښې | مگر | اكه اوغواړى الله | چې رب زمونږ | دې افراخه دې | رب زمونږه | په هر څيز باندې |
| مگر دا كه الله ﷻ اوغواړى (نو هغه بيله خبره ده) زمونږ د رب علم د هر څيز فراخه دې (دهغه نه هيڅ څيز | | | | | | |

| عِلْمًا | عَلَى اللّٰهِ | تَوَكَّلْنَا | رَبَّنَا | افْتَحْ | بَيْنَنَا |
|---|---|---|---|---|---|
| په لحاظ دعلم سره | په الله باندې | توكل اوكړو مونږه | اے ربه زمونږه | فيصله اوكړه | په منځ زمونږ كښې |
| پټ نه دې) مونږ په الله ﷻ باندې بهروسه كووا اې ربه ! زمونږ او زمونږ ددې قوم ترمينځه | | | | | |

| وَبَيْنَ قَوْمِنَا | بِالْحَقِّ | وَاَنْتَ | خَيْرُ الْفٰتِحِيْنَ |
|---|---|---|---|
| او په منځ دقوم زمونږ كښې | په حقه سره | او ته | بهتره فيصله كونكې ئې |
| په حقه فيصله اوكړې | او بيشكه ته د ټولو نه بهتر فيصله كونكې يې | | |

**قوله تعالى:: اَوْ لَتَعُوْدُنَّ فِيْ مِلَّتِنَا**

**حضرت شعيب ﷺ ته دخپل قوم دشرک دعوت او دهغه جواب**۔ كافران چه خپل نبى حضرت شعيب ﷺ او هغه زمانې دمسلمانانو سره په كومه بدسلوكئى سره پيش شواوځنگه ئې چه شعيب ﷺ او مؤمنان اوويرول چه زمونږ كلې پريږده او زمونږ دين اختياركړه او زمونږ وفادار جوړ شه. د دې ټولوخبرو الله تعالى خبروركوى. دا خطاب خو په ظاهره باندې رسول الله ﷺ ته دې خومراد ترې د هغه امتيان دى. د شعيب ﷺ د قوم كبرژنوونيلې وو چه اې شعيبه (ﷺ) مونږ به تا او ستا ملگرى د كلى

نه اوباسو اويا داچه ته به واپس زمونږ دين طرف ته راګرځې. نوشعيب ﷺ فرماني چه آيا تاسو داسې كول غواړئي سره د دې چه زمونږ شرك اختيارول ناخوښ وي، نوكه مونږ ستاسو دين ته واپس راشو اوهم ستاسو نظريات خپل كړو نو مونږ به په الله تعالى باندې يو ډيرغټ بهتان اولګوو چه دا بتان د الله تعالى سره شريكان اوګرځوو. دغه شان د كافرانود تابعدارئي نه نفرت ښكاره كوي. زمونږ نه خو به دا اونه شي چه مونږ بيامشركان جوړشو.اودا خبره ده كه الله تعالى مونږ خطاكړې نو هغه بله خبره ده. دلته هم خبره هم د الله تعالى طرف ته ګرځولې شي ځكه چه هغه ته په راتلونكې هره خبره باندې احاطه ده. مونږ چه كومه خبره اختياروو اوكومه نه اختياروو په ټولوكارونوباندې هم په الله تعالى باندې يقين ساتو. اې الله تعالى! زمونږ او زمونږ د دې قوم په مينځ كښې حقه خبره ښكاره كړې او مونږ له په دوى باندې فتح راكړه ته بهتر فتح وركونكې ئې. داسې عادل او منصف ئې چه يوه ذره ظلم نه كوې.

| وَقَالَ الْمَلَأُ | الَّذِينَ | كَفَرُوا | مِن قَوْمِهِ | لَئِنِ | اتَّبَعْتُمْ | شُعَيْبًا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوونيل سردارانو | هغو | چې انكارئې كړې وو | دقوم دهغه | نه كه چرې | پيروى اوكړه تاسو | دشعيب |
| نو دهغه دقوم هغه كسانوخپل قوم ته اوونيل كوم چې كافران شوي وو | | | | | اكه تاسو دشعيب تابعدارى اوكړه | |

| إِنَّكُمْ | إِذًا | لَّخَاسِرُونَ | فَأَخَذَتْهُمُ | الرَّجْفَةُ |
|---|---|---|---|---|
| بيشكه تاسو به | په دغه وخت كښې | خامخانقصان موندونكي شئ | نواونيول هغوئ | يوې زلزلې |
| نوتاسو به په دغه وخت كښې ضرور په نقصان كښې ئې | | | ..................نو په هغوئ باندې زلزله راغله | |

| فَأَصْبَحُوا | فِي دَارِهِمْ | جَاثِمِينَ | الَّذِينَ | كَذَّبُوا | شُعَيْبًا |
|---|---|---|---|---|---|
| پس شول هغوئ | په كورونو خپلو كښې | پرمخې پراته | هغه كسان | چې دروغ ئې اوګڼړو | شعيب |
| نوخپلو كورونو كښې پرمخ پريوتل | | | كومو كسانو چه حضرت شعيب ﷺ دروغژن ګڼړلي وو | | |

| كَأَن لَّمْ | يَغْنَوْا | فِيهَا | الَّذِينَ | كَذَّبُوا | شُعَيْبًا |
|---|---|---|---|---|---|
| لكه چې نه وو | اوسيدلى | په دې كلى كښې | هغه كسان | چې په دروغه ئې اوګڼړلو | شعيب |
| هغوئ داسې شولكه چې په دې كلى كښې هډو اوسيدلى نه وو | | | چاچې شعيب ﷺ دروغژن ګڼړلي وو | | |

| كَانُوا | هُمُ الْخَاسِرِينَ |
|---|---|
| وو هغوئ | هم هغوئ نقصان موندونكى |
| نوهغوئ پخپله هلاک شول | |

**قوله تعالى:: لَئِنِ اتَّبَعْتُمْ شُعَيْبًا**
**د حضرت شعيب ﷺ د قوم په كفرباندې كلكيدل اودهلاكت نتيجه:** خبروركولې شي چه د هغوى كفر سركشي اوضلالت ځومره سخت دې اودحق مخالفت دهغوى په زړونوكښې ځومره پوخ او فطرى جوړشوې دې. په دې وجه هغوى په خپل مينځ كښې قسمونه اوخوړل اووعدې ئې اوكړې چه ګورئې كه تاسو د شعيب ﷺ خبره اومنله نو په ډيرتاوان كښې به پريوځئې. د دوى د دې كلكې ارادې نه پس الله تعالى فرمائي چه د دې كلكې ارادې په وجه په هغوى باندې يوداسې زلزله راوليګلې شوه چه هغوى په خپلوكورونوكښې ډب ډهيرې پاتې شو اودا سزا وه د دې خبرې چه شعيب ﷺ اود هغه ملګرى ئې

بغیر د څه وجه ویرول اوهغوی ته نی د وطن نه د ویستلو دهمکیانې ورکولې لکه چه په سورة هود
کښې ذکردې. کله چه زمونږ عذاب په هغوی باندې راغلو نو مونږ شعیب ﷺ او د هغه ملګرې په خپل
رحمت سره بچ کړل اوهغه ظالمان یوداسې تیزې چغې راګیرکړل چه په خپلو کورونو کښې ناست په
ناست پاتې شو اوختم شو. په دې دواړو آیاتونو کښې مناسبت دادی چه دې کافرانو کله ﴿ أَصَلَوٰتُكَ تَأْمُرُكَ ﴾
ونیلو سره تذلیل اوکړو نو یوې سختې چغې هغوی د همیشه د پاره چپ کړل. په سورة شعراء کښې الله
تعالی داسې قصه بیانوی چه کله هغوی نبی دروغ اوګنړلو نو د اوریځې نه په هغوی باندې عذاب
نازلیدل شروع شو اود دې وجه دا وه چه هغوی غوښتنه کړې وه که داسې وی نو په مونږ باندې
آسمان یوه ټکړه راګذارکړه.

**قوم شعیب باندې عذاب:**: نو اوخودلې شو چه په هغوی باندې هم آسمانی عذاب راغلو او په هغوی
باندې درې عذابونه راجمع شو. یو آسمانی عذاب چه د اوریځې نه د اُور بځری او شغلې راپریوتلې.
بیاد آسمان نه یو تندر او چغه پیدا شوه اودهغوی د خپو د لاندې په زمکه باندې یوه سخته زلزله پیدا
شوه چه د هغوی ساګانې اووتلې او بدنونه ئی بې روحه پاتې شو او په خپلو کورونو کښې ډهیرې شو
لکه چه په دې کلی کښې هډوخوك اوسیدلې نه وو او هغوی خو خپل رسول د کلی نه ویستلو. اوس په
مقابله کښې هم د هغوی لفظ الله تعالی سردوباره کوی چه کومو خلقو شعیب ﷺ دروغ ګنړلې وو هم
هغوی په تاوان کښې پاتې شو.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَتَوَلّٰی | عَنۡهُمۡ | وَقَالَ | یٰقَوۡمِ | لَقَدۡ |
| نو مخ واړوو هغه | دهغوئ نه | اووې ونیل | اے قومه زما | بیشکه |
| نوشعیب ﷺ ترې نه مخ اوګرځولو | او ورته ئې اوونیل چې ائې زماقومه | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَبۡلَغۡتُكُمۡ | رِسٰلٰتِ | رَبِّیۡ | وَنَصَحۡتُ | لَكُمۡ | فَكَیۡفَ |
| مادراورسول تاسو ته | پیغامونه | درب زما | اونصیحت اوکړو ما | تاسوته | اوس څنګه |
| ماتاسوته دخپل رب حکمونه رارسولی وو | اوستاسو خیرمې غوښتلې وو | ..............نواوس زه څنګه | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| اٰسٰی | عَلٰی قَوۡمٍ | كٰفِرِیۡنَ ﴿٩٣﴾ | |
| زهٔ افسوس اوکړم | په قوم | کافر باند | |
| دهغه قوم په حال باندې افسوس اوکړم | | | |

قوله تعالی:: لَقَدۡ اَبۡلَغۡتُكُمۡ رِسٰلٰتِ رَبِّیۡ

**شعیب ﷺ د تبلیغ حق ادا کړو:** د کافرانو د دې قسمه وینا کولو سره شعیب ﷺ د هغه ځایه لاړو او ونې
ونیل چه اې قومه ! ما د الله تعالی احکامات تاسو ته رسولی وو. ما خپل حق ادا کړې وو په دې باندې هم تاسو
زماد خیرخواهئی نه فائده اوچته نه کړه نو ستاسو دا خراب انجام کتلو سره به زه ولې افسوس کوم او خپل ځان
ولې خفه کوم.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمَاۤ اَرۡسَلۡنَا | فِیۡ قَرۡیَةٍ | مِّنۡ نَّبِیٍّ | اِلَّاۤ | |
| اونهٔ دې لیږلې مونږ | په یو کلی کښې | یو پیغمبر | مګر | |
| چې هغوئ کفر اختیار کړې وو | مونږ هیڅ یو کلی ته یو پیغمبرنه دې لیږلې | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَخَذْنَآ | أَهْلَهَا | بِالْبَأْسَآءِ | وَالضَّرَّآءِ | لَعَلَّهُمْ |
| نیولی دی مونږ \| خلق دهغې \| په سختو سره \| اوپه تکلیفونو سره \| ددې دپاره چې هغوئ \| | | | | |
| مګرمونږ دهغې اوسیدونکی په سختئ او په تکلیفونو کښې راګیرکړی دی\| دی دپاره | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يَضَّرَّعُوْنَ۝ | ثُمَّ | بَدَّلْنَا | مَكَانَ | السَّيِّئَةِ | الْحَسَنَةَ | حَتّٰى |
| عاجزی اختیار کړی\| بیا \| بدل کړه مونږه\| په ځائې\| دبدحالئ \| خوشحالی \| تردې پورې | | | | | | |
| چې دوی عاجزی اوکړی \| بیامونږ دهغوئ بدحالی په خوشحالئ بدله کړه\| تردې چې | | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| عَفَوْا | وَّقَالُوْا | قَدْ مَسَّ | اٰبَآءَنَا | الضَّرَّآءُ | وَالسَّرَّآءُ | |
| چې ډیر شول \| اووې وئیل \| چې رسیدلی دی \| پلارانو زمونږ ته \| تکلیفونه \| اوخوشحالی | | | | | | |
| هغوئ ښه ترقی اوکړه \|اووې وئیل چې داسې سختئ اوخوشحالئ خوزمونږ په مشرانو هم راغلی وی | | | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَأَخَذْنٰهُمْ | بَغْتَةً | وَّهُمْ | لَا يَشْعُرُوْنَ۝ |
| نوراواونیول مونږهغوئ\| ناګهانه \|اوهغوئ \| نه پوهیدل | | | |
| نوپه دې کښې مونږ هغوئ ناځاپې راونیول \| او هغوئ پرې پوهه هم نشو \| | | | |

**قوله تعالیٰ:: أَخَذْنَآ أَهْلَهَا بِالْبَأْسَآءِ وَالضَّرَّآءِ**

**صحت او خوشحالی هم یوامتحان دې:**- ددې خبرې خبرورکولې شی چه مخکښنوامتونوته چه کوم انبیاء علیهم السلام لیګلې شوی وو هغوی مونږ په تکلیف او خوشحالئی هرحالت کې ازمیښت کړی وو.**(باساء)** یعنی بدنی تکلیف، بدنی بیمارئی او تکلیف او **(الضَّرَّآءِ)** یعنی هغه مصیبت چه د فقر او حاجت په وجه وی د دې د پاره چه هغوی زمونږ طرف ته رجوع اوکړی زمونږ نه اوویریږی اود دې مصیبت د لرې کولو مونږ ته درخواست اوکړی. د کلام تقدیر دا دې چه الله تعالی هغوی په سختوکښې راګیرکړل دې د پاره چه زمونږ په وړاندې عاجزی کړی خو هغوی داسې اونه کړل. په دې باندې مونږ د هغوی حالت د مالدارئی او مزو طرف ته راوګرځولو او هغوی مو دولت مند او خوشحال کړل دې د پاره چه په هغوی ازمیښت اوکړو. د دې د پاره اوفرمائیلې شو چه د سختئی نه نرمئی او راحت طرف ته هغوی مونږ اوګرځول. د بیمارئی په ځائې مو ورله صحت او عافیت ورکړو. د غربت په ځائې مو ورله مالداری ورکړه چه هغوی شکر ادا کړی او د نعمت ناشکری پرېږدی خو هغوی داسې اونه کړل. **(حَتّٰى عَفَوْا)** یعنی د هغوی په اولاد او مال کښې مو برکت واچولو. ارشاد دې چه په خوشحالئی او تکلیف دواړو څیزونو باندې هغوی مونږ ازمیښت کړل دې د پاره چه د الله تعالی طرف ته راوګرځی. ولې نه خو هغوی زمونږ شکرویستونکی جوړشو اونه ئې صبر او عاجزی اختیارکړه او وئې وئیل چه مونږ خو په مصیبت او تکلیف کښې راګیرشو. دې نه پس مونږ هغوی ته راحت او خوشحالی ورکړه نو وئې وئیل چه دا انقلاب راحت او مصیبت خو د پلارانواو نیکونودوخت نه راروان دی او د همیشه نه هم دا دور وی،کله زمانه داسې وی اوکله داسې وی.دغه شان مونږ هم کله په مصیبت کښې شو اوکله په راحت کښې شو داخو څه نوې خبره نه ده. پکار وه چه هغوی د الله تعالی په دې اشاره باندې د هغه عذاب نه ویریدلې وې اود الله تعالی د ازمیښت طرف ته د هغوی ذهن تلې وې.

**دمؤمن شان په غم اوخوشحالئ کښې:**- خودمؤمنانوحال خودهغوی نه خلاف ووهغوی به د خوشحالئی اوراحت په زمانه کښې د الله تعالی شکر اداکولو او په تکلیف او مصیبت باندې به ئې صبر کولو. لکه

ښکله چه نبی کریم ﷺ فرمائیلي چه د مؤمن په حالت باندې ډیره حیرانتیاده چه د الله تعالی کوم یوحکم هم دهغه متعلق وی په هغې کښې د هغه د پاره هم د خیر اړخ راوځي که چرې مصیبت راغلو او صبرنی اوکړو نو هم په دې مصیبت کښې هغه په فائده کښې پاتې شو. اوکه چرته خوشحالی راغله او شکر نی اوکړو نو بیا هم په مزه کښې پاتې شو. (۱) مؤمن خو هم هغه دې چه د تکلیف او خوشحالئ په وخت کښې په دې نتیجه باندې اورسی چه ماته د الله تعالی د طرف نه خوشحالي یا تکلیف راکړې کیدو سره زه ازمیښت کولې شم. په حدیث شریف کښې دی چه مصیبتونه مؤمنان د ګناهونونه پاکوی او د منافق مثال په شان د خر دې چه نه پوهیږی چه په ده باندې څه څیز بار شوې دې او په کوم غرض باندې د هغه نه کار اخستې شي او ولې تړلې شوې دې او ولې پریخودلې شوې دې. (۲) نود دې نه پس ارشاد کیږی چه مونږ هغوی ناڅاپي په عذاب کښې راګیرکړل چه د عذاب د راتلود هغوی ګمان هم نه وو. لکه ښکله چه په حدیث شریف کښې دی چه ناڅاپي مرګ خود مؤمن د پاره رحمت کیدې شي او د کافرد پاره ارمان او افسوس دې.(۳)

| | |
|---|---|
| وَلَوْ اَنَّ | اَهْلَ الْقُرٰى |
| اوکه چرې | خلقودکلو |
| اوکه ددې کلو خلقو | |

| اٰمَنُوْا | وَاتَّقَوْا | لَفَتَحْنَا | عَلَيْهِمْ | بَرَكٰتٍ |
|---|---|---|---|---|
| ایمان راوړې وې | اودتقوی لارنې اختیارکړې وې | خامخا به پرانستې وومونږه | په هغوی باندې | برکتونه |
| ایمان قبول کړې وې | ...... اوخان نې دګناه نه بچ کولې | | نومونږ به پرې دآسمان او | |

| مِّنَ السَّمَآءِ | وَالْاَرْضِ | وَلٰكِنْ | كَذَّبُوْا | فَاَخَذْنٰهُمْ |
|---|---|---|---|---|
| دآسمان نه | اودزمکې نه | لیکن | ادروغ اوګنړوهغوی | نواونیول مونږه هغوی |
| اوزمکې برکتونه ښکاره کړی ووا | خو هغوی (زمونږ نبې) دروغ اوګنړلې | | ..........نو مونږ | |

| بِمَا | كَانُوْا | يَكْسِبُوْنَ﴿٩٦﴾ | اَفَاَمِنَ | اَهْلُ الْقُرٰى |
|---|---|---|---|---|
| په سبب دهغې | چې وو هغوی | چې کوو به نې | آیا پس په امن کښې دی | خلق ددې کلو |
| دخپلو عملونو په سزا کښې راګیرکړل | | | آیا خلق (اوس) د دې خبرې نه بې غمه شوی دی | |

| اَنْ | يَّاْتِيَهُمْ | بَاْسُنَا | بَيَاتًا | وَّهُمْ | نَآئِمُوْنَ﴿٩٧﴾ | اَوَاَمِنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| له دې نه چې | رابه شي دوی ته | عذاب زمونږه | دشپې | اودوی | اوده وی | آیا اوپه امن کښې دی |
| چې زمونږ عذاب پرې د شپې راشي | | | کوم وخت کښې چې دوی اوده پراته وی | | ...........او که د | |

---

۱) صحیح مسلم کتاب الزهد باب (المؤمن امره کله خیر): ۲۹۹۹، احمد: ٤/۳۳۳، ابن حبان: ۲۸۹٦.

۲) د خرد مثال د ذکرکولوسره مونږ ته څه روایت ملاونه شوخود دې مثال نه بغیر یا بیاد مؤمن مثال د نرم بوټی اود کافرد صنوبرد ونې مثال سره دا روایت په دې خایونوکښې وارددې. صحیح مسلم کتاب صفات المنافقین باب (مثل المؤمن کالزرع...): ۲۸۱۰، ترمذی: ۲۸٦٦، ابن حبان: ۲۹۱۵، احمد: ۲/۴۵۰.

۳) احمد: ٦/۱۳٦، بیهقی: ۳/۱۳۷ مجمع الزوائد: ۲/۳۱۸.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَهْلُ الْقُرٰى | اَنْ | يَّاْتِيَهُمْ | بَاْسُنَا | ضُحًى | وَّهُمْ |
| خلق دديِ | کلو | له دې نه | چې رابه شي دوئ ته | عذاب زمونږه | په وخت دخاښت کښي | اودوئ |

کلوخلق په دې باره کښې بې غمه شوي دي|چه زمونږ عذاب ورته دکچه غرمې په وخت کښې راشي اوهغوئ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَلْعَبُوْنَ ۝ | اَفَاَمِنُوْا | مَكْرَ اللّٰهِ | فَلَا يَاْمَنُ | مَكْرَ اللّٰهِ |
| لوبې کوي | آياپس په امن کښې دي دوئ | ادپټ تدبير دالله نه | پس نه په امن کيږي | ادتدبير دالله نه |

بې خبره لګياوي لوبې کوي| آيادوی دالله د پټوتدبيرونو نه غافله شوا حال دا دې چې دالله ﷻ د تدبيرونو نه صرف

| | |
|---|---|
| اِلَّا الْقَوْمُ | الْخٰسِرُوْنَ ۝ |
| مګر | هغه قوم | چې تباه کيدونکې وي| |

هغه خلق بې غمه کيږي چه تاوانيان وي |

قوله تعالى: : اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا لَفَتَحْنَا عَلَيْهِمْ بَرَكٰتٍ مِّنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ

**په ايمان او تقوى باندې د رحمت دروازې پرانستې شي**:- دکلي والو د ايمان د کمی خبر ورکولې شی د کوموطرف ته چه پيغمبران ليګلې شوې وو لکه چه فرمانی دا کلی والا ايمان ولې راونړلو چه د دوی ايمان دوی ته فائده ورکړې وې. د يونس ﷺ قوم چه کله ايمان راوړې وو نومونږ هغوی‌د دنيا د رسواکونکی عذاب نه بچ کړې وو او يوې مودې پورې هغوی د دنيا په مزوکښې وو يعنی ټولو په ټولو ايمان نه وو قبول کړې سوا د يونس ﷺ د قوم نه چه کله هغوی عذاب اوليدو نو مؤمنان شو لکه چه فرمائی مونږ هغوی د يولاکهه نه زياتو انسانانوته پيغمبر ليګلې وو. ارشاد دې که چرې دې کلی والو ايمان راوړلې وې او پرهيزګاری ئې اختيارکړې وې نو مونږ به د آسمان اوزمکې برکتونه په دوی نازل کړې وو. يعنی د آسمان نه باران او د زمکې نه ميوې. خو هغوی دروغ اوګڼړل نو د هغې په بدله کښې مونږ هم هغوی ته د عذاب مزه وراوڅکله. يعنی د رسولانو تکذيب ئې اوکړو نو د هغوی د بد عمل په وجه مونږ هغوی په سخت عذاب کښې راګيرکړل. بيا الله تعالی د خپلو اوامرو مخالفت کولو او په ګناهونوباندې زړورتيا کولو نه هغوی‌اووېرول.

**کم بخت دالله تعالی د عذاب نه بې ويرې وی**:-آيا دا کلی وال زمونږ د عذاب نه اووتل او محفوظ شول. هغوی به اوده وی چه زمونږ عذاب به هم شپه په شپه کښې هغوی راګيرکړی ياد دې خبرې نه په امن کښې دی چه د ورځې به هغوی عذاب يو وخت کښې راګيرکړی او هغه وخت به هغوی په خپل کاروبار کښې اوعفلت کښې اخته وی.آياد دې خبرې نه هغوی په امن کښې دی چه زمونږ انتقام به هغوی يو وخت کښې هم نه راګيروی او هغوی به په هغه وخت کښې په خپله هيره او غفلت کښې وی. پوهه شئ چه دکمبخت قوم نه علاوه بل څوك هم د الله تعالی دعذاب نه بې فکره کيدې نه شی. په دې وجه حسن بصری ﷫ اووئيل چه مؤمن تابعداری کوی نيك عمل کوی او بيا هم هغه د الله تعالی نه ويريږی او ګناهګار د ګناهونو ارتکاب کوی او بيا هم هغه خپل ځان مامون او محفوظ ګڼړی.

| | | |
|---|---|---|
| اَوَلَمْ يَهْدِ | لِلَّذِيْنَ | يَرِثُوْنَ |
| آيا ښکاره نهٔ شوه | هغه کسانوته | چې وارثان کيږی |

آيا دې واقعاتو کښې هغه کسانو ته معلومه نهٔ شوه کوم چه

| الْأَرْضِ | مِنْ بَعْدِ | أَهْلِهَا | أَنْ | لَّوْ نَشَاءُ |
|---|---|---|---|---|
| د زمکې | روستو | داوسیدونکو دهغې نه | دا خبره چې که چرې | اوغواړو مونږه |
| دزمکې د اوسیدونکو نه پس د هغوی وارثان جوړ شوی دی \| دا که چرې مونږ اوغواړو نو | | | | |
| أَصَبْنٰهُمْ | بِذُنُوبِهِمْ | وَنَطْبَعُ | عَلٰى قُلُوبِهِمْ | |
| نواوبه نیسومونږه هغوی | په سبب دګناهونو دهغوی | اومهرلګوو مونږه | په زړونو دهغوی باندې | |
| دوی به هم پخپلو ګناهونو کښې راونیسوا او مونږ دوی له په زړونو مهرونه لګوو \| پس هغوی | | | | |
| فَهُمْ | لَا يَسْمَعُونَ ⑩ | | | |
| نوهغوی | هیڅ نه اوری | | | |
| هیڅ نه اوری | | | | |

**دګناهونو په وجه هلاکت او په زړونوتالې:-** ارشاد کیږی چه پوهیږئی چه مخکینی خلق مونږ دهغوی د ګناهونو په وجه هلاك کړې وو اواوس دوی د زمکې وارثان جوړشوی دی اوپه زمکه باندې دوی آبادکړې شوی دی نوآیا داخبره اوس هم دوی ته ښکاره شوې نه ده که چرې مونږ اوغواړو نو دوی به هم په عذاب کښې راګیر کړو. دې کافرانو د ځان نه وړاندې د خلقو په شان لار اختیار کړې ده هم د هغوی په شان اعمال کوی اود الله تعالی نه سرکشه شوی دی اود دې سرکشئی په سزا کښې به مونږ د دوی په زړونوباندې مهر اولګوو چه دوی بیا څه نیکه خبره نه واوریدې شی او نه پوهه شی. دغه شان په یو بل ځایْ کښې فرمائی آیا دوی ته د دې خبرې نه عبرت نه کیږی چه د دوی نه وړاندې څومره قومونه تباه کړې شوی دی او هغوی به خپلو کورونوکښې څنګه اوسیدل؟ آیا دا د پوهه خلقو د پاره نښې نه دی؟ ([1])اوفرمائی چه دې نه وړاندې تاسو په کلکه سره دا وعده نه کوله چه تاسو باندې به زوال نه راځی سره د دې نه چه دوی باندې زوال راغلې وو او نن دهغه ظالمانو په ځایْ تاسو یئی([2])
او فرمائي چه د دوی نه وړاندې څومره قومونه تباه شوی چه نن د هغوی نوم او نښه نشته اونه دهغوی چرته څه آواز اوریدې شي.اوفرمائی چه آیاداکافران نه ګوری چه ددوی نه وړاندې دلته څومره قومونو مزې کولې چه هغه مزې کول تاسوته هم نه دی نصیب شوی اوبیادآسمان نه دباران عذاب اودلاندې نه دسیلاب راخوټ کیدل شروع شواو هغوی ټول په ټول هلاك کړې شو د هغوی نه پس مونږ بل قوم راوستلو آباد موکړلو. د عادیانود قوم دتباهئی ذکرکولوسره فرمائی چه اوس صرف دهغوی کنډرې لیدلې شی او د مجرمانو هم دغه حشر وی په کوموکښې چه مونږ نن تاسو آباد کړی یئی.یووخت داسې وو چه هغوی آبادوو. هغوی ته مواوریدونکی غوږونه لیدونکې سترګې اوپوهیدونکې زړونه ورکړې وو خود هغوی غوږونو د هغوی سترګواودهغوی زړونوهغوی ته هیڅ فائده هم اونه رسوله ځکه چه هغوی دالله تعالی د آیاتونوانکار کولواوچه کومې توقې مسخرې هغوی کولې دهغې سزا نې اوموندله.ستاسود زمکې څومره کلی تباه کړې شو اوڅومره نښې واوختې راواوختې.پوهه شئی کیدې شی چه څه عبرت واخلئی([3]) اوفرمائی چه دې نه وړاندې خلقو رسولان دروغ ګنړلې وو او نو هغوی څنګه نتیجه اوکتله اوتاسو دهغوی په مقابله کښې دلسمې حصې طاقت هم نه لرئی([4]) اوفرمائی څومره کلی

---

[1] ۲۰/طه: ۱۲۸.
[2] ۱٤/ابراهیم: ٤٥
[3] ٤٦/الاحقاف: ۲٥، ۲۷.
[4] ۳٤/سبا: ٤٥.

تباه کړې شو د هغوی دکورونوچتونه راپرېوتل دهغوی چيني بيکاره شوې لوئ لوئ محلونه وران ويجاړ شو.هغوی په دنيا کښې په ګرځيدو راګرځيدو ولې نه کتل چه دوی ته پوهيدونکي زړونه او اوريدونکی غوږونه ورکړې شو خکه چه.سترګې ړنديږی نه بلکه هغه زړونه ړنديږی کوم چه په سينوکښې وی (۱) او فرمائی چه رسولانوسره ټوقې مسخرې اوشوې نو په هغوی باندې هم هغه د ټوقومسخرو عذاب نازل کړې شو(۲) مطلب د دې قسم ډير آياتونه دی چه د رب د دښمنانو په انتقام باندې رڼرا اچوی او په اولياء الله باندې په احسان او کرم باندې. نو هم په دې سلسله کښې دا لاندينې ارشاد کيږی.

| تِلْكَ الْقُرٰى | نَقُصُّ | عَلَيْكَ | مِنْ اَنْۢبَآىِٕهَا |
|---|---|---|---|
| دا کلی | بيانوؤمونږه | په تاباندې | دقيصو دهغې نه |
| دغه (زاړه) کلی وو چې مونږ تاته دهغې واقعات بيانوؤ | | | |

| وَلَقَدْ | جَآءَتْهُمْ | رُسُلُهُمْ | بِالْبَيِّنٰتِ | فَمَا كَانُوْا | لِيُؤْمِنُوْا |
|---|---|---|---|---|---|
| اوبيشکه | چې راوړې هغوئ ته | رسولانو دهغوئ | صفاصفانښې | پس نه ووهغوئ | چې ايمان ئې راوړې وې |
| اوهغوئ ټولو ته پيغمبران واضح دليلونه سره راغلی وو | خوهغوئ په هغه خبره ايمان راونړو | | | | |

| بِمَا | كَذَّبُوْا | مِنْ قَبْلُ | كَذٰلِكَ | يَطْبَعُ اللّٰهُ | عَلٰى قُلُوْبِ |
|---|---|---|---|---|---|
| په هغه څيز | چې دروغ ګڼرلې وو هغوئ | دمخکښې نه | دارنګې | مهر لګوی الله | په زړونو |
| چې کومه ئې مخکښې دروغ ګڼرلې وه | دغه شان الله ﷻ دکافرانو په زړونو باندې مهرلګوی | | | | |

| الْكٰفِرِيْنَ ۝ | وَمَا وَجَدْنَا | لِاَكْثَرِهِمْ | مِّنْ عَهْدٍ | وَاِنْ وَّجَدْنَا |
|---|---|---|---|---|
| دکافرانوباندې | اواونه موندل مونږه | اکثرخلق دهغوئ | وفاکونکی په وعده | اوبيشکه اوموندل مونږه |
| ...... اومونږ په دوئ کښې زيات کسان بې لوظه موندلی وو | او مونږ په دوی کښې زيات | | | |

| اَكْثَرَهُمْ | لَفٰسِقِيْنَ ۝ |
|---|---|
| اکثر خلق دهغوئ | خامخا فاسقان |
| کسان نافرمان موندلې وو ......... | |

قوله تعالى: فَمَا كَانُوْا لِيُؤْمِنُوْا بِمَا كَذَّبُوْا مِنْ قَبْلُ

**په معجزاتوردَ عادت نه خلاف کارونه، ليدلوباندې ئې هم ايمان رانه وړلو:**-دنوح عليه السلام، هود عليه السلام، صالح عليه السلام، لوط عليه السلام او شعيب عليه السلام دقومونودذکرکولو نه پس چه هغوی هلاك کړې شو اومؤمنان بچ کړې شواو داچه درسولانوپه ذريعه معجزې اودلائل پيش کړل اودهغوی حجت پوره کړې شو. نو ارشاد کيږی چه اې محمد(ﷺ)! د دې کلی والو حالات مونږ تاسو ته اوروو. هغوی ته رسولانو ښکاره نښې رسولې وې او مونږ خو د رسول ليګلو سره د حجت پوره کولونه بغيرعذاب نه نازلوو. دا د دې کلو والا قصې دی چه په کوموکښې څه باقی دی اوځه کنډرې جوړ شوی دی.دا ظالم دوی په مونږ نه دې کړې بلکه دوی په خپله په خانونوظلم کړې دې اوهغوی پخپله ذمه واردی(۳) اوهغوی به ايمان څه راوړلې وو چه دا هغوی

(۱) ۲۲/الحج: ۴۵-۴۶.
(۲) ۶/الانعام: ۱۰.
(۳) ۱۱/هود: ۱۰۱-۱۰۲.

د اول نه دروغ ګڼرلي وو. د﴿ بِمَا كَذَّبُوْا ﴾ ب سببیه ده یعنی د وحی په دروغ ګڼرلو هغوی د ایمان راوړلو حقدار نه وو. لکه چه فرمائی تاسو څه پوهیږئی دوی خو به د معجزو په پیش کولو هم ایمان نه راوړی. مونږ به د دوی زړونه او سترګی واړوو څکه چه دوی په اول خل هم ایمان نه وو راوړی. په دې وجه دلته اوفرمائیلي شو چه الله ﷻ دکافرانوپه زړونوباندې مهرلګوی. په دوی کښې اکثردخپلو تیروشوو قومونو دعهداومیثاق هیڅ خیال نه ساتی.په دوی کښې خواکثرمونږفاسقان اوموندل کوم چه د تابعدارئی اوحکم منلونه خارج دی.داعهد هغه دې چه دروز ازل نه د دوی نه اخستې شوې وو او هم په هغې باندې پیداکړې شواوهم هغه خبره د دوی په خونی او فطرت کښې کیخودې شوه.وعده دا وه چه الله ﷻ د دوی رب اومالك دې دهغه نه علاوه بل رب نشته. ددې هغوی اقرار کړې وو ګواهی ئی ورکړې وه خوبیاد هغې مخالفت کولوسره هغوی وعده شاته اوغورزوله او الله تعالی سره ئی نور هم شریك کړل د څه چه نه دلیل شته نه حجت، نه د عقل خبره ده اونه د شرع. فطرت سلیمه خود دې بت پرستئی خلاف دې.د شروع نه تراخرې پورې ټولو پیغمبرانو علیهم السلام د دې بت پرستئی نه منع کوله لکه چه په حدیث د مسلم شریف کښې دی چه الله ﷻ فرمائی ما خو خپل بندیګان د بت پرستئی نه لرې پیداکړی وو شیطانان راغله او هغوی ئی د رښتونی دین نه واړول او ما چه کوم حلال کړی وو هغوی هغه حرام کړل[۱]

**دهرانسان پیدائش په فطرت سلیمه وی:** په بخاری اومسلم شریف کښې دی چه هر پیدا کیدونکې په خپل اسلامی فطرت سره پیدا کیږی خود هغوی یهودیان یا نصرانیان مور پلار هغوی یهودیان او یا نصرانیان جوړوی[۲]یامجوسیان ئی جوړکړی. الله تعالی په خپل خوږ کتاب کښې فرمائی چه مونږ تانه وړاندې څومره انبیاء لیګلی دی ټولو د ﴿لااله الاالله﴾ تلقین کولو[۳]ارشاد دې چه تانه وړاندې مونږ کوم رسولان لیګلی د هغوی نه به مونږ تپوس کوو چه آیا د الله تعالی نه علاوه هم بل یو رب د عبادت لائق ګرځولي شوې وو[۴]اوفرمائی چه د هر قوم نه مونږرسول لیګلي چه عبادت صرف دالله ﷻ کوئ اوشیطان د عبادت نه بچ اوسیږئی[۵] ددې قسم ډیر آیاتونه دی. د پورتنی آیت باره کښې حضرت ابی بن کعب ﷛ فرمائی چه د میثاق په ورځ چه بندیګانو د وحدانیت کوم اقرار کړې وو هغه د الله تعالی په علم کښې شته په دې وجه د الله ﷻ د دې علم په وجه هغوی ایمان راوړونکی نه دی او هم دغه شان اوشو چه د دلائلو مخې ته په راتلوباندې ئی هم ایمان رانه وړلو سره د دې چه د میثاق په ورځ ئی ایمان قبول کړې وو.الله ﷻ نه پته وه چه دا د ناخوښئی په وجه دې لکه چه فرمائی که چرې دوی بیا دنیاطرف ته اولیګلې شی نو بیا به هم هغه بت پرستی شرك او ګناه کوی دکوم نه چه دوی منع کړې شوی وو.

| ثُمَّ | بَعَثْنَا | مِنْۢ بَعْدِهِمْ | مُّوْسٰى | بِاٰيٰتِنَآ |
|---|---|---|---|---|
| بیا | اولیږلو مونږه | روستو دهغوئ نه | موسی | سره دنښو خپلو |
| بیا ددې نه پس مونږ حضرت موسی ﷤ خپلو نښو سره | | | | |

[۱] صحیح مسلم کتاب الجنه الصفات التی یعرف بها فی الدنیا اهل الجنه واهل النار: ۲۸٦۵، احمد:۴/۲۴۴، ابن حبان: ٦۵۳، عبدالرزاق:۲۰۰۸۸،مسند الطیالسی:۱۰۷۹.

[۲] صحیح بخاری کتاب التفسیر سوره الروم باب ﴿لاتبدیل لخلق الله﴾: ۴۷۷۵، صحیح مسلم:۲٦۵۸، ترمذی:۲۱۳۸، احمد:۲/۲۵۳، ابن حبان: ۱۳۰.

[۳] ۲۱/الانبیاء: ۲۵.

[۴] ۴۳/الزخرف:۴۵.

[۵] ۱٦/النحل:۳٦.

| فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ | بِهَاۚ | فَظَلَمُوْا | وَمَلَا۟ئِهٖ | اِلٰى فِرْعَوْنَ |
|---|---|---|---|---|
| پس اوګوره\| څه رنګې شو | دهغې سره\| | نوظلم اوكړوهغوئ\| | اوسردارانو د هغه ته\| | فرعون ته |

فرعون او دهغه سردارانو ته اوليږلوا نو هغوئ زمونږ نښو سره زياتې اوكړو | نو ا وګوره چې د

عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِيْنَ۝

انجام | دفساديانو

د فساديانو څهٔ انجام شوا

قوله تعالى:: فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِيْنَ۝

**فرعونيانوته دَ تكذيب حق سزا:-** ارشاد كيږي چه مخكينو پيغمبرانو نوح،هود، صالح، لوط او شعيب عليهم السلام نه پس مونږ موسى ﷺ ته خپلو ښكاره معجزو وركولو سره د فرعون طرف ته اوليګل. فرعون د مصر بادشاه وو خوفرعون اودهغه قوم انكار اوكړو او كفر ئې اوكړو لكه چه فرمانى هغوى د سركشئى په وجه انكار اوكړو حالانكه د هغوى زړونومنل. يعنى چه كوم خلق د الله تعالى د لارې نه منع شوى دى اود رسولانوتكذيب ئې كړې اې محمد(ﷺ)! ته خو غوراوكړه چه مونږ هغوى ته څنګه سزا وركړه اود موسى ﷺ په كتلو سره مونږ هغوې غرق كړل. ګوره د دې مفسدينو څنګه نتيجه شوه. د فرعون اود هغه د قوم د عذاب متعلق خبره څنګه په بلاغت سره بيان كړې شوه اود موسى ﷺ اود مؤمنانو د پاره څنګه آسانې وركړله.

| رَسُوْلٌ | اِنِّيْ | يٰفِرْعَوْنُ | مُوْسٰى | وَقَالَ |
|---|---|---|---|---|
| راليږلې شوې يم | بيشكه زهٔ \| | انې فرعونه \| | موسى \| | اواوونيل\| |

او حضرت موسى ﷺ ورته ا وونيل چې انې فرعونه زهٔ

| اِلَّا الْحَقَّ ؕ | عَلَى اللّٰهِ | اَنْ لَّا اَقُوْلَ | حَقِيْقٌ عَلٰٓى | مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ۝ۙ |
|---|---|---|---|---|
| مګرحق | \| په الله باندې\| | چې اونهٔ وايم زه \| | قائم يم زهٔ په دې \| | دطرفه درب العالمين نه \| |

د مخلوقاتو د رب د طرفه پيغمبر راغلې يم\ زما فرض دادى چې دالله باره كښې دحقې خبرې نه بغيربل هيڅ نه وايم

| مَعِيَ | فَاَرْسِلْ | مِّنْ رَّبِّكُمْ | بِبَيِّنَةٍ | قَدْ جِئْتُكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| زما سره | پس اوليږه \| | دطرفه درب ستاسونه\| | اُدصفادليل سره\| | بيشكه راغلې يم زهٔ تاسوته\| |

تاسوته مې ستاسو درب طرفه ښكاره دليلونه راوړې دى | نو ته ما سره

| فَاْتِ | بِاٰيَةٍ | جِئْتَ | اِنْ كُنْتَ | قَالَ | بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ۝ؕ |
|---|---|---|---|---|---|
| نو راوړه | نښې سره \| | ديوې | چې راغلې ئې تهٔ \| | كه ئې تهٔ \| | اوونيل \| | بنى اسرائيل \| |

بنى اسرائيل رخصت كړه\ فرعون جواب كښې اوونيل | كه تا څه نښې راوړې وى نو هغه اوښايه

بِهَآ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ۝

هغه\| كه ئې تهٔ | د رېښتياويونكو نه |

كه چرې ته\پخپله دعوى كښې ، رېښتونې يې\|

**قوله تعالی:: قَالَ إِن كُنتَ جِئْتَ بِآيَةٍ**

**د موسی ﷺ او فرعون مناظره:-** د موسی ﷺ او فرعون مناظره کیږي د فرعون په دربارکښې اودهغه د قوم قبطیانو په وړاندې د ښکاره معجزو ځرګندونه کیږي او دلائل او حجت پیش کولې شی چه موسی ﷺ فرعون ته اووئیل چه زه د الله تعالی د طرف نه رسول یم او هغه رالیګلې یم چه د هرڅیز خالق او مالك دې. په ما باندې لازم دی چه حق خبره پیش کړم. بعضو د (حقیق علی ان) معنی (حقیق بأن) مراد اخستې ده او وئیلی ئې دی چه "ب" او "علی" د یو بل په عوض راتلې شی لکه (رمیت بالقوس) او (علی القوس) او (جاء علی حال حسنة) اوبه حال (حسنة) اوبعضې مفسرینو وئیلی دی چه (حقیق) نه مراد (حریص) دې یعنی زه هم په ربښتیا خبره کولو باندې حریص یم. بعضې مدنی وائی چه دا لفظ (علی) نه دې (عَلَيَّ) دې د کوم معنی چه واجب یعنی په ما واجب او حق دې چه د حق خبرې نه بغیر بله خبره اونه کړم. زه د الله تعالی د طرف نه قطعی دلیل سره ستاسو طرف ته راغلې یم. ما سره بنی اسرائیل کړه او د قید نه ئې آزاد کړه ځکه چه هغوی د اسرائیل یعنی یعقوب بن اسحق علیهما السلام نبی د نسل نه دی اود هغوی اولاد دې. نو فرعون اووئیل چه مونږ ستا د پیغمبرئی دعوه نه منو که ته پیغمبر ئې او څه معجزه دې راوړې وی نو اوښایه چه ستا د خبرې تصدیق اوشی.

| هِيَ | فَإِذَا | عَصَاهُ | فَأَلْقَىٰ |
|---|---|---|---|
| وه هغه | نو یودم | همسا خپله | پس اوغورزوله موسی ﷺ |
| | | | په دې خبره حضرت موسی ﷺ خپله کوتې اوغورزوله نو دهغې |

| لِلنَّاظِرِينَ | بَيْضَاءُ | هِيَ | فَإِذَا | يَدَهُ | وَنَزَعَ | مُّبِينٌ | ثُعْبَانٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| کتونکوته | تك سپین | وه هغه | نو یودم | لاس خپل | اوراوئې ویستلو | ظاهره | اژدها |
| نه یو اژدها جوړه شوه \| او لاس ئې د (ترخ) نه راویستلو نوهغه دټولولیدونکوپه مخکښې سپین پرقیدونکې وو | | | | | | | |

**قوله تعالی:: فَأَلْقَىٰ عَصَاهُ فَإِذَا هِيَ ثُعْبَانٌ مُّبِينٌ**

**موسی ﷺ خپل لاس سره د قدرت الهی ځرګندونه:-** موسی ﷺ خپله همسا وړاندې واچوله نو د الله تعالی په قدرت هغه یوه اژدها جوړه شوه اوخپله خوله ئې کولاؤکړه اودفرعون طرف ته ئې ورټوپ کړو فرعون دتخت نه ټوپ کړو اوموسی ﷺ ته ئې په چغه سره اووئیل موسی دا منع کړه هغوی ﷺ رامنع کړه او هغه بیاهمسا جوړه شوه. سدی ﷺ وائی چه کله هغې خوله کولاؤکړه نودهغې لاتدینئی جامنه په زمکه اوپورتننی د محل په دیوال باندې وه. کله چه هغه د فرعون طرف ته وړاندې شوه نو هغه اوړچیدو ټوپ ئې کړو اواوتختیدواوبه چغو ئې اووئیل موسی ﷺ دااونیسه زه به تاباندې ایمان راوړم اوبنی اسرائیل به تاسره کړم. موسی ﷺ هغه راونیوله نو هغه بیا همسا شوه. موسی ﷺ چه کله فرعون له راغلې وو نو فرعون وئیل زه اوښایم چه ته څوك یئې؟ موسی ﷺ وئیل ښه ته اوښایه هغه اووئیل چه ته خو هم هغه یئې چه هم مونږ سره لوئ شوې او هم مونږ ته پاللې ئې[1] موسی ﷺ چه د دې جواب ورکړو نو فرعون حکم اوکړو چه دې اونیسئ. موسی ﷺ چه دا واوریده نو زر ئې همسا اوغورزوله نو هغه یوه لویه اژدها جوړه شوه او خوزیده او په خلقو باندې ئې حمله اوکړه. په خلقو کښې ویره خوره شوه په دې هنګامه کښې پنځه ویشت زره کسان مړه شول. خلق چقنړی شول او مړه شول او فرعون خپل محل ته اوتختیدو په دې روایت کښې ډیر غرابت دې. والله اعلم.

[1] ۲٦/الشعراء:۱۸.

اوس ارشاد کیږي چه موسی ﷺ دویمه معجزه دا اوخودله چه په خپل قمیص کښې لاس دننه کړو او رابهر نې کړو نو هغه ډیرروښانه اوبرقیدونکي راووتلو او په هغې باندې نظر نه شو اودریدلې او: هغې په رنړاکښې هیڅ کمې نه وو اوچه کله به ئې خپل لستونړي ته واپس کولونو هغه به بیاهم هغه شان شو

| قَالَ | الْمَلَأُ | مِنْ قَوْمِ فِرْعَوْنَ | إِنَّ | هٰذَا | لَسٰحِرٌ | عَلِيمٌ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوونیل | سردارانو | دقوم د فرعون نه | بیشکه | دا | خامخا جادوګردې | ښه پوهه |

د فرعون د قوم سردارانو اوونیل چې دا ښه پوخ جادوګر دې| ..............................

| يُرِيدُ | أَنْ يُخْرِجَكُمْ | مِنْ أَرْضِكُمْ | فَمَاذَا | تَأْمُرُونَ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| دې غواړي | چې اوباسي تاسو | دزمکې ستاسو نه | نو څه | حکم کوئ تاسو |

دا غواړي چې تاسو دخپل ملک نه بهرکړي | نوتاسو اووائي چې په دې باره کښې تاسو مات څه وایې

قوله تعالی:: قَالَ الْمَلَأُ مِنْ قَوْمِ فِرْعَوْنَ

**دموسیﷺ معجزوفرعونیان فکرمندکول:-** کله چه د دې خلقو ویره ختمه شوه او په خپل اصلی حال شو نوفرعون د خپلې بادشاهئ ملګرو ته اوونیل چه دې خو ډیر لوئ فنکار جادوګرمعلومیږي. خلقو هم د هغه په وینا عمل اوکړو اود مشورې د پاره کیناستل چه اوس ده سره څه کول پکار دی. د ده نور(رنړا) ختمول د ده خبره دباوول اود موسی ﷺ د کذب او افتراء ثابتولودپاره څه چل اوکړو. هغوی ته د دې خبرې اندیښنه وه چه خلق به د ده د سحر طرف ته مائل شی اود ده عقیدت مند به جوړ شی په څه سره چه به د موسی ﷺ غلبه اوشی اوهغه به خلق د هغوی د زمکې نه بهر اوباسی. خوچه د کومې خبرې هغوی ته اندیښنه وه هم په هغې کښې اخته شو. لکه چه الله تعالی فرمائی چه فرعون او هامان ته هم هغه ویره وړاندې شوه کومه چه هغوی ته وه. (١) کله چه دې خلقو د موسی ﷺ باره کښې مشوره اوکړه نو په یوه خبره باندې اتفاق اوشو د کوم حکایت چه الله تعالی اوفرمائیلو.

| قَالُوا | أَرْجِهْ | وَأَخَاهُ | وَأَرْسِلْ | فِي الْمَدَائِنِ |
|---|---|---|---|---|
| اوونیل هغوی | په انتظار کښې اوساته دې | اوروردده | اواولیږه | په ښارونو کښې |

تولوصلاح ورکړه چې موسی اودهغه رور(هارونﷺ)ته مهلت ورکړه | اوتولو ښارونوته نوکران اولیږه چې

| حٰشِرِينَ ۝ | يَأْتُوكَ | بِكُلِّ سٰحِرٍ | عَلِيمٍ ۝ |
|---|---|---|---|
| راجمع کونکی نوکران | چې راولی تاته | هر یوجادوګر | پوهه |

دهرطرفنه پاخه جادوګران راجمع کړي|

قوله تعالی:: يَأْتُوكَ بِكُلِّ سٰحِرٍ عَلِيمٍ

**د موسیﷺ سره د مقابلې د پاره د ماهرو جادوګرانو خدمات:-** سردارانو فرعون ته مشوره ورکړه چه موسی ﷺ اود هغه رور منع کړنی اود ملک په تولوښارونوکښې خلق اولیګئی او مشهور مشهور جادوګران راجمع کړئی. په هغه زمانه کښې جادوګری ډیره مشهوره وه. د تولو هم دغه وهم اوګمان وو چه دموسی ﷺ دا معجزه هم سحر او دهوکه ده. هغوی تول جادوګرراجمع کړل چه د موسی ﷺ مقابله اوکړی. لکه څنګه چه الله تعالی د فرعون د خبرې نقل کړې دې چه اې موسیﷺ! ته مونږ د خپل جادو

---

(١) ٢٨/القصص:٦.

په زور باندې د ملك نه ويستل غواړي مونږ به هم ستا په شان په جادو سره ستا مقابله كوو. اوس د مقابلې او امتحان د پاره يوتاريخ مقرركړه. د دې خلاف به نه ته څه كوې اونه مونږ. موسى ﷺ اوفرمائيل چه د اختريه ورځ د سحر په وخت كښې ټول خلق راجمع كړئ. اوس فرعون لاړو او خپل د دوكې چلونه ئې اختيار كړل او آخر مقرر شوې وخت راغلو، نو الله تعالى ارشاد فرمائي:

| وَجَآءَ السَّحَرَةُ |
|---|
| او راغلل \| جادوګران \| |
| او جادوګرد فرعون (دربار) ته راغلل |
| فِرْعَوْنَ قَالُوْٓا اِنَّ لَنَا لَاَجْرًا اِنْ كُنَّا نَحْنُ |
| فرعون ته \| وې وئيل \| چې بيشكه \| وى به زمونږ دپاره \| خامخا اجر \| كه شو مونږه \| هم مونږه |
| هغوئ اووئيل كه مونږ په موسى ﷺ باندې غالب شوا نو مونږ ته به څه انعام راكوى كه كنه؛ |
| الْغٰلِبِيْنَ ۝ قَالَ نَعَمْ وَاِنَّكُمْ لَمِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ ۝ |
| غالب \| اووئيل فرعون \| هووى به \| اوبيشكه يئ به تاسو \| دنزديكا نو نه |
| فرعون اووئيل چې آو تاسو به زما په نزدې درباريانو كښې شئ؛ |

**قوله تعالى:: قَالُوْٓا اِنَّ لَنَا لَاَجْرًا**

**دجادوګرو دفرعون نه غوښتنه:-** دلته هغه قرارداد بيانولې شى چه د فرعون او جادوګرو په مينځ كښې شوې وو چه كوم د موسى ﷺ د مقابلې دپاره راغوښتلې شوى وو. كه هغوى په موسى ﷺ باندې غالب راغلل نو دوى ته به ډير لوئ انعام وركولې شى اوهغوى ته به د خپلې خوښې غوښتنه وركولې شى اوهغوى به د مجلس او نزدې خلقو نه شميرلې شى. كله چه ئې د فرعون نه وعده واخسته نو موسى ﷺ ته ئې اووئيل.

| قَالُوْا يٰمُوْسٰٓى اِمَّآ اَنْ تُلْقِيَ وَاِمَّآ اَنْ نَّكُوْنَ نَحْنُ الْمُلْقِيْنَ ۝ |
|---|
| اووئيل هغوئ \| انې موسى \| يا \| ته اوغورزوه \| اويا \| به شومونږه \| هم مونږه \| غورزونكى |
| هغوئ اووئيل چې انې موسى اول ته (رسئ) غورځوې اوكه مونږ (خپلې رسئ) اوغوزوؤ |
| قَالَ اَلْقُوْا ۚ فَلَمَّآ اَلْقَوْا سَحَرُوْٓا اَعْيُنَ النَّاسِ |
| اووئيل \| اوغورزوئ تاسواِبس هر كله چې \| اوغورزوؤ هغوئ \| نوجادونې اوكړو \| په سترګو دخلقو باندې |
| موسى اووئيل چې اول تاسو اوغورزونئ\|نوهر كله چې هغوئ (خپلې رسئ) اوغورزولې\| نود خلقو نظر بندى ئې اوكړه |
| وَاسْتَرْهَبُوْهُمْ وَجَآءُوْ بِسِحْرٍ عَظِيْمٍ ۝ |
| اووې يرول هغوئ \| اوراتله اوكړل هغوئ \| په جادو \| لوئ سره \| |
| اوپه خلقو ئې هيبت راوستو \| او ډيرلوئې جادو ئې پيش كړو \| |

**قوله تعالى:: اِمَّآ اَنْ تُلْقِيَ وَاِمَّآ اَنْ نَّكُوْنَ نَحْنُ الْمُلْقِيْنَ ۝**

**دَ موسى ﷺ اوجادوګرو په ميدان كښې مقابله:-** دادموسى ﷺ او جادو ګرو په مينځ كښې جنګ دې جادوګر وائى چه موسى ﷺ ياخو ته خپل هنر اوښايه يا مونږ خپل هنر اول ښايو. موسى ﷺ اوفرمائيل

اول تاسو خپل کمال اوښائي. د موسی ؑ په دې کښې دا مصلحت وو چه خلق اول د دې جادوګرو تماشه اوګوري او سوچ او کړي او جادوګرد خپل کار نه فارغ شي نوحق خبره به د طلب اود انتظار نه پس واضحه او ښکاره شي اود هغوی په ورانديې به راشي ځکه چه یوه خبره د طلب نه پس په زړه باندې زيات اثرکونکې وي. نو هم داسې اوشو اوس الله تعالی فرمائي چه کله جادوګرو خپل پړي او رسنې اوغورزولې نود خلقو نظربندي ئې اوکړه اوخلقو ته داسې ښکاره کيده چه دا خلق څه کوی نو په حقيقت کښې هم دا کيږي. حالانکه دارسنې او چوکې هم دغه رسنې اوچوکې(همساګانې)وې د کتونکو صرف دا خيال وو چه دا ماران دي. ارشاد کيږي چه د دوی په جادوسره داسې معلوميدل لکه چه دا روان او خوزيږي. د دې په کتلو سره په موسی ؑ باندې هيبت شروع شو مونږ ورته اووئيل ويريږه مه غالب به هم ته ئې. د خپل لاس همسا ته هم په ميدان کښې اوغورزوه، دا به اژدها جوړه شي او دا ټول ماران به تيرکړي. دا جادو خو صرف د دوی دوکه ده جادوګرپه خپله تماشه کښې کاميابيدې نه شي. محمد بن اسحاق ؒ وائي چه د پنځلس زره جادوګرو ډله وه. هرجادوګرسره دغه چوکې او رسنې وې.موسی ؑ د خپل رور سره په همسالګولو سره اووتلو او ميدان ته اورسيدلو. فرعون په خپل تخت باندې د سلطنت د ارکانوسره ناست وو. جادوګرو د ټولونه اول د موسی ؑ په سترګو باندې په جادو سره بندش اوکړو.بيائې دفرعون اوخلقوپه سترګو.اوس هرجادوګر خپلې چوکې اورسنې اوغورزولې. هغه ټول ماران جوړشو ټول ميدان د مارانو نه ډک شو. يوبل پسې روان وو. سدی ؒ وائي چه دا د ديرش زرونه زيات جادوګرو وو ټولو سره چوکې او رسنې وې د عوامو نظربندې‌یاوشوه نوټول دې نظارې کتلوسره اوويريدل. ابن ابی برزه ؒ وائي فرعون اويازره جادوګرراغوښتې وو اويا زره رسنې اوچوکې ماران جوړشوی ګرځيدل. په دې وجه الله تعالی اوفرمائيل ﴿وَجَآءُوْ بِسِحْرٍ عَظِيْمٍ﴾ يعنی هغوی ډير لوئ جادو اوخودلو.

| وَاَوْحَيْنَآ |
|---|
| اووحی اوکړه مونږه |
| اومونږ موسی ؑ ته وحی اوکړه |

| اِلٰى مُوْسٰٓى | اَنْ اَلْقِ | عَصَاكَ | فَاِذَا | هِيَ تَلْقَفُ | مَا |
|---|---|---|---|---|---|
| موسی ؑ ته | چې اوغورزوه | همساخپله | نوپه هغه ساعت | هغې رانغښتل | هغه څه |

چې خپله همسا دې اوغورزوه | نوکله چې هغوی اوغورزولې | نو هم په هغه ساعت ئې دجادوګرانو

| يَاْفِكُوْنَ | فَوَقَعَ | الْحَقُّ | وَبَطَلَ | مَا كَانُوْا | يَعْمَلُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې دروغ جوړکړي ووهغوی | نوثابت شو | حق | اوباطل شو | هغه چې وو هغوی | چې کول به ئې |

ټول ددروغو رسئ يوې نمړئ کړه | نوحق څرګند شو | اود هغوئ جوړکړې څيزونه باطل شول

| فَغُلِبُوْا | هُنَالِكَ | وَانْقَلَبُوْا | صٰغِرِيْنَ | وَاُلْقِيَ | السَّحَرَةُ |
|---|---|---|---|---|---|
| نو مغلوبه شوهغوئ | په دغه ځائې کښې | اوګرځيدل هغوئ | ذليله | اوپريستلې شوا | جادوګران |

نو په دغه موقعه هغوئ لاندې راغلل | او رسوا شول | ..................اوجادوګر بې اختياره

| سٰجِدِيْنَ | قَالُوْٓا | اٰمَنَّا | بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ | رَبِّ مُوْسٰى |
|---|---|---|---|---|
| سجده کونکي | اوونيل هغوئ | ايمان راوړو مونږه | په رب العالمين | چې رب د موسی ﷺ دي |
| په سجده پريوتل | وي ونيل چې مونږ په رب العالمين ايمان راوړي دي | | | په هغه چا چې موسی ﷺ |

| وَهٰرُوْنَ |
|---|
| او دهارون ﷺ دي |
| هارون ﷺ ني مني |

**قوله تعالي:: فَوَقَعَ الْحَقُّ وَبَطَلَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ**

**دحق فتح ميدان موسی ﷺ اوګټلو:-** الله تعالی پدې لويه ازمانش ګاه کښې موسی ﷺ ته خپله وحي راوليګله کومې چه دحق او باطل په مينځ کښې فرق اوکړو. موسی ﷺ هم خپله همسا اوغورزوله څ ګورې چه هغه ټول وهمی ماران خوری اودهغوی يو هم د دروغو مار پاتې نه شو.د دې په کتو باندې جادوګرپوهه شوچه دا جادو نه دې څه آسمانی امداد دې اود الله تعالی کاردې.نو ټول په ټول د الله تعالی په وړاندې په سجده کښې پريوتل او ونې ونيل چه مونږ د موسی ﷺ او هارون ﷺ په الله تعالی باندې ايمان راوړو. موسی ﷺ چه کله ميدان اوګټلو نو په خپله همسا باندې نی لاس اووهلو نو هغه بيا همسا جوړه شوه. جادوګر په سجده کښې پريوتل او ونې ونيل که دې نبی نه وو او جادوګرو نو په مونږ باندې چرې هم غالب نه شو راتلې. قاسم بن ابی برزه رحمه الله وائی چه جادوګرو خپل سرونه د سجدې نه اوچت کړې نه ووچه جنت او دوزخ نې اوليدلو.([1])

| قَالَ | فِرْعَوْنُ | اٰمَنْتُمْ | بِهٖ | قَبْلَ |
|---|---|---|---|---|
| اوونيل | فرعون | ايمان راوړو تاسو | په ده باندې | مخکښې ددې نه |
| فرعون ورته اوونيل چې تاسو په ده باندې ايمان راوړ | | | | حالانکه ماخو تاسو |

| اَنْ اٰذَنَ | لَكُمْ | اِنَّ | هٰذَا | لَمَكْرٌ | مَّكَرْتُمُوْهُ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې زۀ اجازت اوکړم | تاسو ته | بيشکه | دا | خامخا پټ سازش دې | چې کړې دې تاسو |
| ته ددې اجازت نه ووکړې | | دا خوستاسو يو پټه منصوبه وه | | ......... | چې دلته په دې |

| فِي الْمَدِيْنَةِ | لِتُخْرِجُوْا | مِنْهَآ | اَهْلَهَا | فَسَوْفَ |
|---|---|---|---|---|
| په دې ښار کښې | دپاره ددې چې اوباسې تاسو | ددې نه | اوسيدونکی ددې | پس زر به |
| ښار کښې موجوړ کړې وه | په دې غرض چې ددې نه د دې اوسيدونکي اوباسې | | | ښه زر به درته د دې |

| تَعْلَمُوْنَ | لَاُقَطِّعَنَّ | اَيْدِيَكُمْ | وَاَرْجُلَكُمْ | مِّنْ خِلَافٍ |
|---|---|---|---|---|
| معلومه شی تاسو ته | خامخا به پريکړم | لاسونه ستاسو | او خپې ستاسو | د بدل بدل طرفه |
| نتيجه معلومه شی | زه به ستاسو لاسونه او پښې ديو بل اړخ نه کټ کړم | | | ................ |

[1] الطبری:۱۳/۳۰.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | لَأُصَلِّبَنَّكُمْ | أَجْمَعِينَ۝ | قَالُوٓا | إِنَّآ | إِلَىٰ رَبِّنَا |
| بيا به | اخامخا په سولۍ کړم تاسوا | ټول | هغوئ اوونيل | چي بيشکه مونږ | رب خپل ته |
| بيا به ټول په سولۍ کړم \| هغوئ اوونيل چي (څه دې خوښه وي هغه اوکړه) مونږ خپل رب ته | | | | | |
| مُنقَلِبُونَ۝ وَمَا تَنقِمُ | مِنَّآ | إِلَّآ | أَنْ ءَامَنَّا | بِـَٔايَٰتِ | رَبِّنَا |
| واپس تلونکي يو \|اونه اخلې ته بدله \| زمونږنه | مکر | چي ايمان راوړومونږ | په نښو | درب زمونږه | |
| واپس تلونکي يو \| او ته زمونږ نه بدله د دې وجې اخلې چي د خپل رب په نښو باندې مو ايمان راوړی دی | | | | | |
| لَمَّا جَآءَتْنَا | رَبَّنَآ | أَفْرِغْ | عَلَيْنَا | صَبْرًا | وَتَوَفَّنَا |
| هر کله چي \| راغلې مخې زمونږ ته | اي ربه زمونږه | راواوروه | په مونږ باندې | صبر | اووفات کړې مونږه |
| کله چي مونږ ته راغلې \|..................... اي زمونږ ربه ! مونږ ته صبر رانصيب کړه \| اومونږ په | | | | | |
| مُسْلِمِينَ۝ ع | | | | | |
| مسلمانان \| | | | | | |
| داسې حالت کښې وفات کړه چه مسلمانان يو | | | | | |

قوله تعالى:- لَأُقَطِّعَنَّ أَيْدِيَكُمْ
جادوګروته دهغوي دايمان راوړوسزا جادوګرچه کله مؤمنان جوړشو اودفرعون په خپل مقصدکښې ماتې اوشوه نو جادوګرو ته دمکی ورکوی چه دا نن موسی ﷺ ته په تاسو باندې غلبه ملاؤشوه په اصل کښې داستاسوخلقو په خپل مينځ کښې سمجوته او سازش وو چه دغه شان به په حکومت باندې غالب راشئی او اصلی اهل وطن د ملك نه بهرويستل غواړئی.

دفرعون په موسی ﷺ باندې غلط الزام:- يقيناً داخوستاسودټولواستاذ ووچاچه تاسو ته جادو خودلې وو.([1]) هرسړی چه په چا کښې لږشان هم عقل سليم وی پوهيږی به چه د فرعون دا الزام په دې وجه باندې وو چه باطل د باطل ثابت کيدو په وجه هغه غصه شوې وو. موسی ﷺ خود مدين نه په راتلو سره فرعون ته رسيدلې وو او هغه ته ئې د ايمان دعوت ورکړې وو او خپلومعجزات باهره ښکاره کولوسره ئې د خپل رسالت تصديق کړې وو دې نه پس فرعون د خپل ملك په ټولو ښارونوته او ګيرچاپيره علاقوته خلق ليګلې وواود مصرد ښارونونه ئې جدا جدا جادوګران راجمع کړی وو کوم چه هغه اود هغه قوم خوښ کړی وو او هغوی سره ئې د بهترينو انعاماتو اواکراماتو وعده کړې وه. په دې وجه هغوی ته د دې خبرې ډير کوشش وو چه څنګه به په موسی ﷺ غالب راشی او فرعون سره نزديکت حاصل کړی. موسی ﷺ خو د يو جادوګر نه هم خبرنه وو او نه ئې هغوی چرته ليدلې وو او نه هغوی سره چرته ملاؤشوې وواوفرعون په دې خبره هم خبر وو. خودجاهلو عوامو ذهنيت متاثر کولونه بچ کول ئې غوښتل لکه څنګه چه الله تعالی فرمائيلی چه د فرعون قوم د هغه تابعدار وو اود هغه هم خپال جوړشوی وو اوهغه خلق په ډيره لويه ګمراهئی کښې پراته وو([2]) چه د فرعون د ﴿انا ربكم الاعلى﴾ ([3])والا دعوې تصديق ئې کولو.

---

[1]) ۲۰/طه:۲۳۸.
[2]) ۴۳/الزخرف: ۵٤.
[3]) ۷۹/النازعات: ۲٤.

**د موسی علیه السلام د جادوګرومشرسره ملاویدل:** سدی رحمه الله فرمائی چه موسی علیه السلام د جادوګرو سردار سره ملاؤ شوې وو او ورته ئې وئيلې وو چه که زه غالب راغلم نو په ما به ایمان راوړې او آیا دا به اومنئې چه زما پیش کړې شوې څیز د الله تعالی معجزه ده. نو جادوګرونیلې وو چه صباله به زه داسې جادو کوم چه په هغې باندې یو جادو هم غالب نه شی راتلې اوکه چرې ته غالب شوې نو زه به اومنم چه ته د الله تعالی د طرف نه رالیګلې پیغمبرینې. فرعون د هغوی دا خبرې اترې واوریدلې نو په دې وجه باندې ئې دا الزام اولګولو چه تاسو د دې د پاره راجمع شوې یئې چه په حکومت باندې تاسو ته غلبه او اختیار حاصل شی. تاسو د ملك نه لوئ مشران ویستل غواړئې او په تخت باندې پخپله قابض کیدل غواړئې تاسو ته به ډیر زر معلومه شی چه زه تاسوته کومه سزا درکونکې یم. پوهه شئې چه زه به ستاسو ښې لاس اوګسه پښه پرې کړم یا د دې برعکس، بیابه تاسو ټول په پهانسئې باندې زوړندوم. ستاسو لاشونه به دکهجورودونو ښاخونوپورې تړلې او زوړند وی.

**دجادوګرواستقامت اوجرات اوالله ﷻ نه دعا:** ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه پهانسی اوښې لاسونه پریکولو سزا د ټولونه اول هم فرعون راویستلې وه. جادوګرو وئیل چه اوس خو مونږ د الله تعالی شوې یواود هغه طرف ته مو رجوع کړې ده. نن چه ته مونږ ته د کوم عذاب دهمکی راکوې د هغې نه سخت د الله تعالی عذاب دې. مونږ نن ستا په عذاب باندې صبرکوو دې د پاره چه صبا د الله تعالی د عذاب نه خلاصې بیامومو. د دې د پاره هغوی وئیل چه اې الله تعالی په خپل دین باندې مو ثابت قدم اوسانه اود فرعون د عذاب نه د نه ویریدلودپاره مونږ ته صبر راکړه اود خپل نبی حضرت موسی علیه السلام په تابعدارئې کښې مونږ د دنیا نه اوچت کړه. هغوی فرعون ته صفاصفا اووئیل چه ته زمونږ څه کولې شې نو اوکړه هم دا چه ته به زمونږ د دنیاژوندختم کړې. مونږ په هغه باندې ایمان راوړو چه زمونږ رښتونې رب دې. دې د پاره چه هغه زمونږ وړاندینئی خطاګانې معاف کړی اوچه کوم جادوکولو باندې مونږ مجبورشوې وو هغه معاف کړی څکه چه کوم سړې کافرجوړشی اود الله تعالی په وړاندې پیش کیږی د هغه په قسمت کښې به دوزخ وی اونه به په ژوندوکښې شمیروی اونه په مړوکښې اوچه څوك مؤمن او بیا نیکوکارحاضر شی هغه ته به په آخرت کښې لوئ لوئ درجې ملاویږی. دا ټول جادوګر خو سحرکافران جادوګران وواو مابښام په وخت کښې نیکوکار او شهیدان وو.

وَقَالَ الْمَلَاُ مِنْ قَوْمِ فِرْعَوْنَ اَتَذَرُ مُوْسٰی

او اووئیل سردارانو | دقوم دفرعون نه | آیا ته پریږدې | موسی علیه السلام

| دفرعون دقوم سردارانو اووئیل | چې آیا ته موسی علیه السلام او

وَقَوْمَهٗ لِيُفْسِدُوْا فِی الْاَرْضِ وَيَذَرَكَ وَاٰلِهَتَكَ ؕ قَالَ

اوقوم دهغه | چې فساد اوکړی | په زمکه کښې | اوپریږدی بندګی ستا | اودخدایانو ستا | اووئیل ده

دهغه قوم پریږدې | چې په ملک کښې بدامنی پیدا کړی | اوتا اوستامعبودان پریږدی | فرعون اووئیل

سَنُقَتِّلُ اَبْنَآءَهُمْ وَنَسْتَحْیٖ نِسَآءَهُمْ ۚ وَاِنَّا فَوْقَهُمْ

وژنو به مونږه | خامن دهغوی | اوژوندئ به پریږدو | ښځې دهغوی | او بیشکه مونږه | په هغوی باندې

چې مونږ به ددوئ خامن وژنو | اولونړه به ئې دخدمت دپاره ژوندئې پریږدو | او بیشکه مونږ هغوی باندې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قٰهِرُوْنَ۝ | قَالَ مُوْسٰی | لِقَوْمِهِ | اسْتَعِيْنُوْا | بِاللّٰهِ | وَاصْبِرُوْا | اِنَّ | |
| غالب يو | اووئيل موسى | قوم خپل ته | مدد اوغواړئ | دالله نه | اوصبر کوئ | بیشکه | |
| غالب يو\| موسى خپل قوم ته اووئيل چې تاسو دالله نه مدد غواړئ \|اوپه هر (تکليف) صبر کوئ | | | | | | | |
| الْاَرْضَ | لِلّٰهِ | يُوْرِثُهَا | مَنْ | يَّشَآءُ | مِنْ عِبَادِهٖ | وَالْعَاقِبَةُ | |
| زمکه | دالله ده | په ميراث سره وركوي دا | هغه چاته | چې اوغواړي هغه | دبندګانوخپلونه | اوبنه انجام | |
| زمکه صرف دالله ده \| چې کومو بندګانوته ئې خوښه شي نو هغوی ته ئې ورکوي \| اواخر كښې | | | | | | | |
| لِلْمُتَّقِيْنَ۝ | قَالُوْآ | اُوْذِيْنَا | مِنْ قَبْلِ | اَنْ تَأْتِيَنَا | | | |
| دپاره دپرهيزګارانودي | اووئيل هغوئ | ضرر رسولې كيدومونږته | مخکښې ددې نه | چې ته راغلې وې مونږته | | | |
| كاميابي دپرهيزګاروده \| (دموسی دقوم) خلقو اووئيل چې مونږته ستادراتلونه وړاندې هم تکليفونه | | | | | | | |
| وَمِنْ بَعْدِ | مَا | جِئْتَنَا | قَالَ | عَسٰی | رَبُّكُمْ | اَنْ يُّهْلِكَ | |
| اوروستو | دهغې نه | چې ته راغلې مونږته | اووئيل موسى | انزدې دې | رب ستاسو | چې هلاك كړي | |
| راكولې شو اوستادراتلونه پس هم \| ........موسى ورته اووئيل چې زر به ستاسو الله | | | | | | | |
| عَدُوَّكُمْ | وَيَسْتَخْلِفَكُمْ | فِي الْاَرْضِ | فَيَنْظُرَ | كَيْفَ | | | |
| دشمن ستاسو | اوخليفګان كړي تاسو | په زمکه کښې | بيابه ګوري | چې څه رنګې | | | |
| ستاسودشمن هلاک کړي \| اوتاسوبه ددې زمکې خليفه ګان جوړ کړي \| اوبيابه دا ګوري | | | | | | | |
| تَعْمَلُوْنَ۝ | | | | | | | |
| عملونه کوئ تاسو | | | | | | | |
| چې تاسوڅنګه عمل کوئ | | | | | | | |

**قوله تعالي:: اَتَذَرُ مُوْسٰی وَقَوْمَهٗ**

**د دربارپانوفرعون ملامت كول:-** د فرعون اودهغه د ډلې په خپل مينځ کښې د صلاح مشورو خبرورکولې شی چه دموسی دپاره دهغه خلقو په زړونوکښې څنګه کینه وه، فرعون ته دهغه مقربين وائی چه آیا ته به موسی هم داسې پريږدې چه په دنیاکښې به فساد کوی اود ملك خلق به په فتنه کښې اچوی او په هغوی‌کښې به د خپل الله تعالی تبليغ كوي. دا څنګه عجيبه خبره ده، دا خلق خو نور خلق د موسی اود مؤمنانو د فساد خورولو نه ويروی حالانکه هم دغه خلق اصلی مفسدان دی. دوی ته دخپل خان خبر نشته. بعضې وائی چه د ﴿وَيَذَرَكَ﴾ واود "او"په معنی کښې نه دې بلکه د حال په معنی کښې دې. مطلب دا چه ته به موسی ته اجازت ورکوې چه فساد دې خوروی سره د دې چه هغه ستا تابعداری اوستاد خدايانوعبادت پريخې دې.ابی بن کعب دا داسې لوستلې دې ﴿وقد تركوك ان يعبدوك والهتك﴾ دا د ابن جرير بيان دې. بعضو دې واو ته عاطفه وئيلې دې يعنى آيا ته به هغه پريږدې چه فساد اوکړی اوتا او ستا خدايان پريږدی اوبعضو دا ﴿الاهتك﴾لوستلې په معنی د﴿عبادتك﴾ د اول قراءت په بنا بعضې په دې نتيجه باندې رسيدلی چه فرعون هم په پټه توګه د يوبت عبادت كولو اوپه يوبل روايت کښې دی چه د هغه په مرئی کښې يو بت زوړند وو ده به هغې ته سجده كوله. هم د دې په بنا

باندې ابن عباس رضي الله عنه فرماني چه دې خلقو به کله چرته ښانسته غوا ليدله نو فرعون به هغوی ته حکم وركولو چه ددې عبادت کوئی، هم په دې وجه سامری یوسخې جوړکړې وو د کوم نه چه به آواز راوتلو.

**دفرعون په دويم ځلي د بچو دوژلو اعلان:**-غرض داچه فرعون د خپلو درباريانو درخواست منظوركړو اووئی وئيل چه د دوی نسل ختمولو دپاره مونږ به د ده ځامن قتل کوو او جينکئی به ژوندئی پریږدو. دُ دې قسم دا دويم ظلم وو. د دې نه وړاندې د موسی علیه السلام د پيدائش په وخت كښې فرعون هم داسې كړې وو چه دموسی علیه السلام وجود دسرنه دنيا ته رانه شی اوواقعه د هغې خلاف اوشوه چه څه فرعون غوښتل او موسی علیه السلام آخر پيدا شو او ژوندې پاتې شو. هغه بيا داسې اراده اوکړه بنی اسرائيل نی ذليل کول اوپه هغوی باندې غالب کيدل نی غوښتل. دلته هم دهغه خواهش پوره نه شو.

**اخر انجام فرعونيان غرق کړل:**:الله تعالى موسى علیه السلام ته عزت وركړو اوفرعون نی ذليل كړواود هغه لښکر نی غرق کړو. کله چه فرعون د بنی اسرائیلو سره د بدنی کولو کلکه اراده اوکړه نو موسی علیه السلام خپل قوم ته اوفرمائیل صبرکوئی او هم د الله تعالى نه امداد غواړئی. موسی علیه السلام هغوی سره د ښه عاقبت وعده اوکړه اودا چه داملك به ستاسو شی. زمکه د الله تعالى ده او هغه چه چاله غواړی د ملك بادشاهي ورکوی او ښه عاقبت هم د متقيانود پاره دې. دموسی علیه السلام ملگرو اووئيل چه ستاسو د راتلو نه وړاندې هم مونږ ته لوئ لوئ تکلیفونه راکړې شوی دی او ستاسو د راتلونه پس هم تاسو گورئی چه څومره مو ذليل کوی. موسی علیه السلام هغوی ته په موجوده حالاتو اوراتلونکی حالاتو باندې خبرورکولو سره فرمانی چه ډير زرالله تعالى ستاسو دښمن هلاك كونكې دې.ددې آيت په ذريعه هغوی په نعمتونو باندې دشكركولو د پاره رابيدارولې شی.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَلَقَدْ | اَخَذْنَآ | اٰلَ فِرْعَوْنَ | بِالسِّنِيْنَ |
| اوپه تحقيق سره | نيولي وو مونږه | قوم دفرعون | په قحط سره ډير کلونه |
| اومونږ دفرعون خلق څوځوکاله په قحط........... | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَنَقْصٍ | مِّنَ الثَّمَرٰتِ | لَعَلَّهُمْ | يَذَّكَّرُوْنَ۝ | فَاِذَا |
| اوپه نقصان سره | دميوؤ نه | دپاره ددې چې هغوی | نصيحت قبول کړی | نوهركله چې |
| اود پيداوار په کمی کښې راونیول | | د دې دپاره چې دوئ تري نه نصيحت قبول کړی | | نوهركله چې |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| جَآءَتْهُمُ | الْحَسَنَةُ | قَالُوْا | لَنَا | هٰذِهٖ | وَاِنْ | تُصِبْهُمْ | سَيِّئَةٌ |
| به راغله هغوئ ته | ښه زمانه | نو وئيل به هغوی | ازمونږ دپاره | ده | دا | او که | اوبه رسيدله هغوئ ته | خرابه زمانه |
| به په هغوی ښه وخت راغلو | | نو هغوئ به اوونيل چې دا خوزمونږ خپل کمال دې | | | | او كه بدحال به پرې راغلو | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَّطَّيَّرُوْا | بِمُوْسٰى | وَمَنْ مَّعَهٗ | اَلَآ | اِنَّمَا | طٰٓئِرُهُمْ | عِنْدَ اللّٰهِ | |
| نوبدفالی به نې نيوله | په موسی | اوپه هغه چا چې دهغه سره وو | خبردار | بیشکه | بدفالی دهغوئ | دالله سره ده | |
| نوموسی علیه السلام اودهغوئ ملگری به نې سپيره گڼړل | | | حال دادې چې ددوئ سپيره توب د الله د طرفه وو | | | | |

| | | |
|---|---|---|
| وَلٰكِنَّ | اَكْثَرَهُمْ | لَا يَعْلَمُوْنَ۝ |
| ليکن | اکثردهغوئ | نه لري علم |
| خو زيات خلق د هغوی نه پوهيدل | | |

**قوله تعالي:: وَلَقَدْ أَخَذْنَآ اٰلَ فِرْعَوْنَ بِالسِّنِيْنَ**
**فرعونيان هم دخپل سپيره والی په وجه په قحط کښې اخته شو:-** مونږ دفرعونيانو په قحط کښې اخته کولو سره ازميښت کول اوغوښتل،دهغوی په پټوکښې غله اونه شوه او په ونوکښې ميوې رانغلې. دکهجورو په ونوکښې به يوه کهجوره لګيدله دې د پاره چه هغوی څه عبرت حاصل کړی. کله چه به دا ښه آباد وو او ښه غله به کيدله نو ونيل به ئې چه مونږ خو د دې حقداران يو دا زمونږ حق دې څنګه به آباد نه يو. اوکه قحط به شو اود لوږې به مره کيدل نو ونيل به ئی چه دا د موسی ﷺ اود هغه د ملګرو سپيره والې دې.داسپيره والې خوهم دهغوی دخپل قسمت خبره ده.ابن عباس ﷺ دلفظ طائر نه مصائب مراد اخلی.د سپيره والی اصلی سبب باندې خلق نه پوهيږی.ابن عباس ﷺ ﴿عِنْدَ اللهِ﴾ نه ﴿من قبل الله﴾ مراد اخلي يعنی ﴿منجانب الله﴾.

وَقَالُوْا مَهْمَا تَأْتِنَا
اواو ونيل هغوی|هرهغه څيز| چې راوړې تهٔ مونږ ته
دفرعون قوم اوونيل که تهٔ مونږ ته د جادو په

بِهٖ مِنْ اٰيَةٍ لِّتَسْحَرَنَا بِهَا فَمَا نَحْنُ لَكَ
هغه| دنښې نه | چې تهٔ جادو اوکړې په مونږ باندې|په هغې سره | پس نهٔ يو | مونږ | ستا
ذريعه هرځومره نښې پيش کړې | ..................خو مونږ په تا باندې هرګز

بِمُؤْمِنِيْنَ ﴿١٣٢﴾ فَاَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الطُّوْفَانَ وَالْجَرَادَ وَالْقُمَّلَ
منونکی |نواوليږه مونږه | په هغوئ باندې | طوفان | اوملخان | او سپږې
ايمان راوړونکي نه يوا نومونږ په هغوئ باندې طوفان راوليږلو | اوملخان او سپږې موږې راپريخودې

وَالضَّفَادِعَ وَالدَّمَ اٰيٰتٍ مُّفَصَّلٰتٍ فَاسْتَكْبَرُوْا وَكَانُوْا
او چيندخان | اووينې | نښې |جدا جدا | نوتکبراوکړو هغوئ| اووو هغوئ
چيندخې موږې راوليږلې او دوينې عذاب مو پرې راوستوا داټولې نښې مو جدا جدا اوخودلې |خو هغوئ بیاهم کبر کولو

قَوْمًا مُّجْرِمِيْنَ ﴿١٣٣﴾ وَلَمَّا وَقَعَ عَلَيْهِمُ الرِّجْزُ قَالُوْا
قوم | مجرمان |اوهرکله| چې به راغې| په هغوئ باندې | عذاب | نواوبه ونيل هغوئ
اولوئې مجرمان خلق ووا ........... او چې کله به پرې عذاب راغلو | نو هغوئ به اوونيل چې

يٰمُوْسَى ادْعُ لَنَا رَبَّكَ بِمَا عَهِدَ عِنْدَكَ
انې موسی ﷺ|اوغواړه دعا|دپاره زمونږه|درب خپل نه|په سبب دهغې| چې وعده کړې ده هغه| ستاسو سره
انې موسی ﷺ! زمونږدپاره د الله ﷻ نه سوال اوکړه | څنګه نې چې تا سره وعده کړې ده

لَئِنْ كَشَفْتَ عَنَّا الرِّجْزَ لَنُؤْمِنَنَّ لَكَ وَلَنُرْسِلَنَّ
که چرې لرې کړو تا | ازمونږنه |دا عذاب | نو خامخا به مونږه خبره اومنو | ستا |اوخامخا به اوليږو مونږه
که چرې تازمونږ نه دا عذاب لرې کړو | نومونږ به په تا ايمان راوړوا اومونږ به تاسره خا مخا

| مَعَكَ | بَنِيٓ اِسْرَآءِيْلَ۝ | فَلَمَّا | كَشَفْنَا | عَنْهُمُ | الرِّجْزَ | اِلٰٓى اَجَلٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| تاسره | بنی اسرائیل | نوهرکله چې | په لرې کړو مونږ | دهغوی نه | عذاب | دهغه نیټې پورې |
| بني اسرائيل رخصت کړو | خو چې کله به مونږ د هغوی نه تر يوې نيټې پورې عذاب لرې کړو | | | | | |

| هُمْ | بٰلِغُوْهُ | اِذَا | هُمْ | يَنْكُثُوْنَ۝ |
|---|---|---|---|---|
| چې هغوی | رسيدونکی وو هغې ته | نو په هغه ساعت به | هغوی | ماتوله هغه وعده |
| اودوی به هغې ته اورسيدل | نو هغه ساعت به دخپلو وعدو نه په شا شول | | | |

**قوله تعالى: فَاَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الطُّوْفَانَ**

**په فرعونيانو باندې مختلف قسم عذابونه:-** دفرعون دقوم د بدمعاشئ او سرکشئ خبرورکولې شي چه دهغوی څنګه حق سره دښمنی اوپه باطل باندې اصرار وو چه هغوی دا هم اووئيل چه که موسی ﷺ څه نښه هم اوښائی چه د کوم په ذريعه په مونږ باندې سحر اوکړې نو بيا هم مونږ په هغه باندې ايمان راوړونکی نه يو.مونږ به نه د هغه دليل قبلوو اونه به د هغه په معجزه باندې ايمان راوړو. نوالله تعالى فرمائی مونږ په هغوی باندې طوفان اوليګلو. د طوفان په معنی کښې اختلاف دې. ابن عباس ؓ فرمائی چه ډير باران ئې غرق کړې يا فصلونو او باغونوته نقصان اورسوی يا دا چه عام وبا. مجاهد ﷫ فرمائی چه سيلاب او طاعون.دحضرت عائشه صديقه ؓ نه روايت دې چه حضور ﷺ فرمائيل چه طوفان يعنی مرګ. په يو بل روايت کښې دی دالله تعالى ناګهانی اوآسمانی عذاب.لکه چه فرمائی ﴿فَطَافَ عَلَيْهَا طَآئِفٌ مِّنْ رَّبِّكَ وَهُمْ نَآئِمُوْنَ۝﴾ يعنی دالله تعالى ناګهانی عذاب هغوی ته په اودوکښې راورسيدو. جراد يعنی ملخ چه يومشهور الوتونکې څيز دې اود هغې خوړل حلال دی.

**ملخان خوړل حلال دی دصحابه کرامو نه ثابتدی:-** د بخاری اومسلم شريف په حديث کښې دی عبدالله بن ابی اوفی ؓ فرمائی چه مونږ نبی کريم ﷺ سره په غزواتوکښې شريك وو اووه ورځې نو ملخان خوړل[1] د حضرت ابن عمر ؓ روايت دې چه حضور ﷺ فرمائيل دوه مړی او دوه وينې زمونږ د پاره حلال دی يو کب او دويم جراد که دا مړه هم وی نو جائز دی. او په وينه کښې دوه چك شوې وينې يعنی تلی (نورکی) اواينه[2] حضور ﷺ اوفرمائيل چه اکثر څناورچه په حقيقت کښې د الله تعالى لښکر دې زه يې خپله نه خورم او نه ئې دنورو دپاره حرام وايم سره ددې چه هغه حلال دی اوزه ئې نه خورم [3] د حضرت رسول الله ﷺ د نه خوړلو سبب دا دې چه د هغوی طبيعت ته بنه نه لګيدل. لکه (ګوه) سوسمار دحضور ﷺ د هغې خوړل خوښ نه وو ولې نوروته ئې اجازت ورکړې وو. د حضرت ابن عباس ؓ نه روايت دې چه نبی کريم ﷺ به ملخ سوسمار او ګردې نه خوړلې خو دې ته ئې حرام نه وئيل. ملخ نه ئې خکه ډډه کوله چه دا د الله تعالى يو عذاب وو. لکه څنګه چه ملخان راوالوزی نو فصلونه تباه کوی او د ګردې اومښائې نه ئې خکه ډډه کوله چه دا متيازو سره نيږدې اجزاء دی او سوسمار په دې وجه چه دا لکه يو مسخ شوې امت دې. بيا ابن عباس ؓ اوفرمائيل چه دا روايت هم غريب دې ما داخکه نقل کړې دې چه په دې سره د هغوی ﷺ د اجتناب په وجوهاتو رڼا پريوځی. اميرالمؤمنين حضرت عمر بن خطاب ؓ به جراد ډير په شوق سره خوړل. د حضرت عمر ؓ نه د جراد باره کښې تپوس اوکړې شو چه آيا دا حلال دی نو وئې فرمائيل چه کاش يو دوه لپې دوه درې ملخان ملاوشوې وې نو مونږ به ډير په

[1] صحيح بخاری کتاب الذبائح باب اکل الجراد:۵۴۹۵، صحيح مسلم: ۱۹۵۲، ابوداؤد:۳۸۱۲، ترمذی:۱۸۲۲
[2] احمد:۹۷/۲، ابن ماجه کتاب الاطعمه باب الکبد والطحال ۳۳۱۴.
[3] ابوداؤد کتاب الاطعمه باب فی اکل الجراد: ۳۸۱۳، ابن ماجه:۳۲۱۹.

مزې سره خوړلې وې[۱] دحضرت انس بن مالک ﷺ نه روایت دې چه د نبی کریم ﷺ ازواج مطهراتو به ډك ډك طباق جراد په تحفه کښې رالیګل. [۲] رسول الله ﷺ فرمائیل چه مریم بنت عمران علیها السلام الله تعالی ته دعاکړې وه چه په ما داسې غوښه اوخوره په کومه کښې چه وینه نه وی نو الله تعالی به هغې باندې جراد اوخوړل. نو بی بی مریم اوونیل اې الله تعالی! د پالنې نه بغیرهم دې ته ژوند ورکړې او بغیرد شور او آواز نه دوی یو بل پسې اولګوې. [۳] حضور ﷺ فرمائیل چه دا جراد مه وژنئی ځکه چه دا د الله تعالی یو زبردست لښکر دې[۴] دا حدیث ډیر غریب دې(فَأَرْسَلْنَا) والا آیت باره کښې مجاهد رحمه الله فرمائی چه دا عذاب په دې وجه دې چه په تیره شوې زمانه کښې به دې د دروازو میخونه خوړل او لرګی به نې پریخودل. اوزاعی رحمه الله فرمائی چه زه ځنګل طرف ته وتلې ووم چه ناڅاپی مې یو ملخان اولیدلو چه په زمکه او آسمان باندې خواره شوې وو او یو سړې په یو ملخ باندې سور او هغه مسلح وو اولکه ځنګه چه په خپل لاس سره اشاره کوی اودیکه ورکوی نو ملخان اخواکیږی او هغه بار بار وائی چه دنیا او مافیها ټول باطل دی باطل دی.

د قاضی شریح رحمه الله نه د جراد باره کښې تپوس اوکړې شو نو وئی ونیل الله تعالی دې دا تباه کړی په دوی کښې د اووه طاقتوروشیانو شان دې. د دې سر خو د اس سر دې او سټ ئی د غوئی دې، سینه ئی د ازمری ده او لیچې د ګده پښې د اوښ، لکئی د مار او خیټه د لړم خیټه ده.

د الله تعالی ددې قول(أُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ وَطَعَامُهُ مَتَاعًا لَّكُمْ) د ذکر په وخت کښې دا حدیث بیان کړې شوې دې چه مونږ د رسول الله ﷺ سره د حج یا عمرې د پاره روان وو چه مونږ د ملخانو یو لښکرسره مخامخ شو. مونږ هغه په لرګوسره دیکه کولو او وهلو سره د دې چه مونږ د احرام په حالت کښې وو. مونږ دا خبره حضور ﷺ ته اوکړه نو هغوی ﷺ اوفرمائیل چه د احرام په حالت کښې د سمندرد ښکار ممانعت نشته[۵] دحضرت جابر ﷺ نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ د جراد د پاره داسې بد دعا کړې وه یا الله! لوئ واړه ټول جراد هلاك کړې. د هغوی اګئی تباه کړه اود هغوی نسل ختم کړه او زمونږ نه اخستې شوې رزق د هغوی نه واخله نوجابر ﷺ عرض اوکړو یارسول الله ﷺ! دا خو د الله تعالی لښکر دې تاسو دوی ته د نسل د ختمیدو بددعا کونی نو وئی فرمائیل چه دا د سمندر د کبانونه پیداکیږی. [۶] زیاد خبر ورکړې دې چه کوم سړی دا د کبانونه پیداکیدونکی لیدلی دی د هغه بیان دې چه کبان کله د سمندر غاړې ته نیزدې اګئی اچوی او د غاړې اوبه اوچې شی نمر راخیژی نود اګونه جراد راوځی او الوزی.

اود الله تعالی قول ( إِلَّا أُمَمٌ أَمْثَالُكُم ) لاندې مونږ داحدیث بیان کړې دې چه الله تعالی زر قسمه مخلوق پیدا کړې دې. شپږسوه سمندری او څلور سوه د اوچې او زر هلاك کیدونکې مخلوق جراد دې. حضور ﷺ اوفرمائیل چه د تورې یعنی جهاد کولو سره د وباء اثر نه وی او د ملخانو سره کامیابی نه وی. دا حدیث غریب دې. د (الْقُمَّلَ) باره کښې ابن عباس ﷺ فرمائی چه هغوی د غنمو دننه چینجی دی یا دا چه هغه واړه واړه جراد دی د کوموچه وزرې نه وی اونه الوزی. مجاهد رحمه الله وائی چه (الْقُمَّلَ) واړه د تور رنګ چینجی دی یا ماشو ته وائی یا هغه یوداسې چینجې دې چه اوښانو پورې اینختونکې د کونو په شان دی.

---

[۱] موطا امام مالك كتاب صفه النبي ﷺ باب ماجاء في الطعام والشراب: ۳۰ وسنده صحيح.
[۲] ابن ماجه كتاب الصيد باب صيد الحيتان والجراد: ۳۲۲، بيهقي: ۲۵۸/۹.
[۳] بيهقي: ۲۵۸/۹.
[۴] المعجم الاوسط: ۹۲۷۳، مسند الشاميين: ۱۶۵۶، مجمع الزوائد: ۳۹/٤.
[۵] ابوداؤد كتاب المناسك باب الجراد للمحرم: ۱۸۵٤، ترمذی: ۸۵۰، ابن ماجه: ۳۲۲۲، بيهقي: ۳۰۷/۵، احمد: ۳۰۶/۲.
[۶] ترمذی كتاب الاطعمه باب ماجاء في الدعاء على الجراد: ۱۸۲۳، ابن ماجه: ۳۲۲۱، الموضوعات: ۲۳۳/۲.

**په فرعونیانو مختلف قسم عذابونه او دهغې تفصیل::** روایت دې چه کله موسیٰ ﷺ فرعون ته ونیلې وو چه بني اسرائیل ماسره کړه نو هغه وخت د الله تعالی د طرف نه طوفان راغلې وو باران وو چه به شپېوباندې وریدلو. فرعونیان پوهه شوچه دا د الله تعالی عذاب دې. نو ورنی ونیل چه اې موسیٰ ﷺ د الله تعالی نه دعا اوغواړه چه دا باران بند شي مونږ به په تاباندې ایمان راوړو او بني اسرائیل به هم تاسره کړو. موسیٰ ﷺ دعا اوکړه خونه هغوی ایمان راوړلو اونه ئې بني اسرائیل آزاد کړل. په هغه کال په باران باندې ښه فصل اوشو، غلې او میوې ښه ډېر پیدا شوې او سبزیانې رااوټوکیدې. خلقو ونیل چه بس زمونږ هم دا خواهش وو. خود ایمان نه راوړو په وجه په هغوی باندې جراد یعنی ملخان نازل کړې شو اوټول فصلونه ئې اوخوړل او سبزیانې ئې تباه کړې نو پوهه شو چه اوس به یو فصل هم باقي پاتې نه شي. موسیٰ ﷺ ته ئې اوونیل چه دا عذاب اخواکړه نو ایمان به راوړو. د موسیٰ ﷺ په دعا سره ملخان ختم شو ولې بیائې هم ایمان راونړلو او غله ئې په کورونوکښې ښه راجمع کړه او ونیل ئې چه اوس د څه ویره ده غله مو ښه راجمع کړې ده نو ناڅاپې په هغوی د غنمو د تش والي عذاب په هغوی باندې نازل کړې شو. که یو سړې به لس جریبه پیمانه غله واخسته او اوړه کولو له به لاړو نو درې قفیزه غله به هم پاتې نه شوه. بیائې موسیٰ ﷺ ته درخواست اوکړو چه دا د قمل عذاب لرې کړه نومونږ به ستا خبره واورو خود عذاب لرې کیدونه پس ئې بیا سرکشي اوکړه. یو ځل موسیٰ ﷺ فرعون سره ملاویدلو چه د چینډخې ترټر ئې واوریده نو موسیٰ ﷺ فرعون ته اوونیل چه دا په تا او ستا په قوم باندې دا څه عذابونه دی هغه ونیل چه دې نه خو څه د خطرې خبره نشته خولا مانښام شوې هم نه وو چه د ټولو خلقو په بدنونوباندې چینډخانو ټوپونه وهل. که چابه د خبرې د پاره خوله کولاووله نو چینډخې به ورټوپ کړو اوپه خله کښې به ئې لاړه. بیائې موسیٰ ﷺ ته درخواست اوکړو خو د عذاب په لرې کیدوباندې ئې بیا هم ایمان راونړلو. اوس د وینې عذاب نازل شو چه د نهرونو اولختونه به ئې اوبه راوړې نو هغه به وینه شوه. په لوښوکښې به ئې چه اوبه کیخودې نو وینه به شوه. فرعون ته خلقو شکایت اوکړو چه مونږ د وینې په عذاب کښې اخته شو د څکلود پاره اوبه نه ملاویږي. فرعون اوونیل چه په تاسو باندې جادو کړې شوې دې نو خلقو اوونیل چا به جادو کړې وی زمونږ په لوښوکښې خو بس وینه ده او وینه ده. بیا موسیٰ ﷺ له راغله او درخواست ئې اوکړو او وعدې ئې اوکړې خواوس ئې هم نه ایمان راوړو اونه ئې بنې‌اسرائیل آزاد کړل.ابن عباس ﷺ نه روایت دې چه کله جادوګرو ایمان راوړو او فرعون مغلوب او ناکامه واپس شو نو بیا هم د کفر اوسرکشئی نه منع نه شو نو وارپه وار په هغه باندې د ښنبوڅرګندونه اوشوه، قحط سره مخ شو، د باران طوفان پرې راغلو، بیا د جراد عذاب، بیا دسپږو او چینجو بیا د چینډخو او وینو دا مسلسل ننښې ښکاره شوې. طوفان راغلو او ټوله زمکه ترمه شوه نه ئې ایوه کولې شوه او نه ئې څه کرلې شو، د ولږې نه ترقیدل، موسیٰ ﷺ ته ئې درخواست اوکړو چه عذاب لرې شي خو د ایمان راوړو وعده ئې پوره نه کړه. بیا د جراد یعنی ملخانوعذاب راغلو چه ټول فصلونه ئې اوخوړل اود دروازو میخونه ئې اوخوړل د څه په وجه چه د هغوی کورونه راپریوتل. بیادسپګو عذاب راغلو.موسیٰ ﷺ اوفرمائیل چه ذ دې غونډئی طرف ته راشئی بیا موسیٰ ﷺ د الله ﷺ په حکم په یوکانړی باندې لرګې اووهلودکوم نه چه بې شمیره جوکې اوچینجي راووتل اوپه کورونو کښې هرطرفته خواره شو.خوراکونو پورې اونختل نه اوده کیدې شواونه ئې آرام کولې شونوبیاد چینډ خوعذاب راغلو.په خوراکونوکښې چینډخې،لوښوکښې چینډخې اوپه کپړوکښې چینډخې .بیاد وینو عذاب راغلود اوبوپه هریو لوښی کښې داوبوپه ځاې وینې وې. غرض مختلفو عذابونوسره مخ شو[1]

[1] الطبری:۱۳/۶۳-۶۴.

**دچیندخودوژلو ممانعت:**: د حضرت عبدالله بن عمر ﷺ نه روایت دې چه حضور ﷺ اوفرمائیل چه چیندخې مه وژنئ ځکه چه د چیندخو عذاب د فرعون په قوم باندې نازل کړې شوې وو نو بوه چیندخه د اُور په تنورکښې د الله تعالی د خوشحالولو په خاطر غورزیدلې وه نو د چیندخو د اوسیدو ځایٔ الله تعالی یخ ځایٔ اوګرځولو یعنی د اوبو مقام او د هغې آواز ئې تسبیح اوګرځوله. زید بن اسلم د "دم" یعنی د وینو د عذاب نه د پوزې نه د وینو څڅیدو عذاب مراد اخلي.(رواه ابن ابی حاتم)

فَانْتَقَمْنَا
| نوبدله واخستله مونږه
| نومونږ ترې نه بدله واخستله

مِنْهُمْ فَاَغْرَقْنٰهُمْ فِي الْيَمِّ بِاَنَّهُمْ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا
دهغوئ نه | پس ډوب کړل مونږه هغوئ | په سمندر کښې | په سبب دهغې چې هغوئ | دروغ ګڼړلې وې | انبیې زمونږه
او په سمندر کښې مو ډوب کړل | .........ځکه چه هغوی زمونږ ایتونه دروغ ګڼړل

وَكَانُوْا عَنْهَا غٰفِلِيْنَ ۝ وَاَوْرَثْنَا الْقَوْمَ الَّذِيْنَ كَانُوْا
اووو هغوئ | دهغې نه | بې پروا | اووارثان کړل مونږه | خلق | هغه | چې ووهغوئ
او د هغې نه بیخی غافله وو | .... ........ ......او چې کوم قوم کمزورې ګڼړلي شوي وو مونږ هغوئ

يُسْتَضْعَفُوْنَ مَشَارِقَ الْاَرْضِ وَمَغَارِبَهَا الَّتِيْ
چې کمزورې ګڼړلي شوی ووئ | دمشرق طرفونو | دزمکې | اودمغرب طرفونو دهغې | هغه زمکه
دهغې ملک دمشرق او مغرب وارثان جوړ کړل | .............په کوم کښې چې مونږ

بٰرَكْنَا فِيْهَا ؕ وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ الْحُسْنٰى
چې برکت اچولې وو مونږه | په هغې کښې | اوپوره شوه | وعده | درب ستا | دخیر
برکتونه ایخودې وو | اوستا درب هغه ښکلې وعده پوره شوه | چې کومه ئې د

عَلٰى بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۙ۬ بِمَا صَبَرُوْا ؕ وَدَمَّرْنَا مَا كَانَ
په بنی اسرائیلو باندې | په سبب دهغې چې | صبراوکړوهغوئ | اوبرباد کړل مونږه | هغه | چې وو
بنی اسرائیلو په حق کښې کړې وه | ځکه چې هغوئ صبر کړې وو | اومونږ هغه هرڅه تباه کړل

يَصْنَعُ فِرْعَوْنُ وَقَوْمُهٗ وَمَا كَانُوْا يَعْرِشُوْنَ ۝
چې جوړول به | فرعون | اوقوم دهغه | اوهغه | چې وو هغوئ | چې پورته به ئې خیژول
چې کوم به فرعون اودهغه قوم جوړول | اوکوم (اوچت اوچت عمارتونه) ئې چې ابادول

**قوله‌تعالی:: وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ الْحُسْنٰى عَلٰى بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ**
**فرعونیان ذ فناپه کنده کښې اوپه بنی اسرائیلو الله تعالی انعام:-** د فرعون قوم ته سره د متواترو نښو خودلو او بوبل پسې مو په هغوی ډیر عذابونه نازل کړل خود هغوی سرکشی لرې نه شوه نو مونږ هغوی په دریاب کښې ډوب کړل. په کوم کښې چه مود موسی ﷺ د پاره لار جوړه کړه او په هغې کښې

ورکوزشواوبه هغې باندې پورې وتل. بنی‌اسرائیل هم هغه سره وو. بیا فرعون اود هغه لښکر هم هغوی پسې ورکوزشول. کله چه هغوی د دریاب مینځ ته شو نو اوبه یوځایْ شوې او هغوی ډوب شو. دا د الله تعالی د آیاتونو تکذیب کولو اود هغې نه غفلت کولو نتیجه وه. الله تعالی خبر ورکوی چه بیا الله تعالی د فرعون هغه زمکه شرقًا او غربًا بنی اسرائیلوته حواله کړه څوك نی چه ډیر کمزوری ګڼړل اوڅوك چه کمزورې جوړ شوی وو اود غلامئي ژوندون نی تیرولو. لکه چه فرمانی مونږ غوارو چه په دې قوم باندې احسان اوکړو کوم چه په دنیاکښې کمزورې ګڼړلې شي. مونږ هغوی بادشاهان او سرداران جوړول غوارو. هم دوی به د خپلې زمکې وارثان او واکمن ګرخوو اود کوم عذاب نه چه د فرعون هامان اود فرعون د قوم اندیښنه وه  په هغوی به هم هغه عذاب نازلوو([1]) اوفرمائی چه هغوی څنګه باغونه، فصلونه او بهترین مقامات پریخودل او تباه شو په کوم کښې چه هغوې په ډیرو مزوکښې اوسیدل.که مونږ چرې اوغوارونو داسې به یوبل قوم سرداران اوبادشاهان جوړکړو([2]) حضرت حسن بصری رحمه الله اوقتاده رحمه الله د شرق اوغرب نه د شام ملك مراد اخلی. د الله تعالی مبارکه خبره د بنی اسرائیلو په حق کښې پوره شوه څکه چه هغوی په مصیبتونوباندې صبرکړې وو اود الله تعالی هغه خبره او وعده ﴿وَنُرِيدُ أَن نَّمُنَّ عَلَى الَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا فِي الْأَرْضِ وَنَجْعَلَهُمْ أَئِمَّةً وَنَجْعَلَهُمُ الْوَارِثِينَ ۞ وَنُمَكِّنَ لَهُمْ فِي الْأَرْضِ وَنُرِيَ فِرْعَوْنَ وَهَامَانَ وَجُنُودَهُمَا مِنْهُم مَّا كَانُوا يَحْذَرُونَ ۞﴾ یعنی فرعون اود هغه قوم چه کوم عمارتونه او باغونه جوړکړې وو او محلونه نی اودرولې وو ټول مونږ تباه او برباد کړل.

وَجَاوَزْنَا بِبَنِي إِسْرَائِيلَ الْبَحْرَ فَأَتَوْا عَلَىٰ قَوْمٍ

اوپورستل مونږه| بنی اسرائیل | په سمندر | نوورغلل هغویْ| په داسې قوم

اومونږ بنی اسرائیل دسمندر نه تیر کړل| نو په لار کښې په یوداسې قوم ورغلل | چې

يَعْكُفُونَ عَلَىٰ أَصْنَامٍ لَّهُمْ ۚ قَالُوا يَا مُوسَى اجْعَل

چې مینه نې جوړه شوې وه |دهغه بتانوسره| چې وږ د هغویْ|اووئیل هغویْ | ائې موسی | مقررکړه

خپلوبتانوته(منجوران)ناست وو | نودویْ اووئیل چې ائې موسی علیه السلام مونږ

لَّنَا إِلَٰهًا كَمَا لَهُمْ آلِهَةٌ ۚ قَالَ إِنَّكُمْ

دپاره زمونږه|یومعبود|لکه څنګه چې دی هغویْ دپاره|معبودان | اووئیل موسی علیه السلام | چې بیشکه تاسو

لد ددویْ دمعبودانو پشان یو معبود جوړکړه | ............موسی علیه السلام ورته اووئیل چې تاسو خو ډیر

قَوْمٌ تَجْهَلُونَ ۞ إِنَّ هَٰؤُلَاءِ مُتَبَّرٌ مَّا هُمْ

داسې قوم ئې| چه نه پوهیږئ | بیشکه| داخلق چې دی|بربادیدونکې ده| هغه طریقه| چې هغویْ

ناپوه خلق یئ| ..............داخلق چې په کومه لار روان دی |هغه دتباهۍ لاره ده

فِيهِ وَبَاطِلٌ مَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ۞

په هغې کښې دی| اوباطل دې | هغه عمل | چې وږهغویْ| چې کوږبه ئې |

اوددویْ ټول عبادت سراسر بې بنیاده دې | ..................

[1] ۲۸/القصص:۵-٦.

[2] ٤٤/الدخان:۲۵.

**قوله تعالي::** قَالُوْا يٰمُوْسَى اجْعَلْ لَّنَآ اِلٰهًا

**دَ بنیاسرائیلو دجهالت نه ډکه مطالبه:-** د بنی اسرائیلو جاهلانوخلقو مطالبه بیانولې شی چه موسی ﷺ کله دریاب باندې پورې وتلو اود الله تعالی دا عظیمه نښه نی اولیدله نود هغوی تیریدل په یو داسې قوم باندې اوشو چه بتان نی اخستې وو. بعضې مفسرین وانی چه هغه کنعانیان وو یا د قبیلې لخم وو.دغوا په شان یو بت نی جوړکړې وو په دې وجه د دې نه پس هغوی ددغې په شان د سخی په عبادت کښې اخته شو او ونی ونیل اې موسی(ﷺ)! زمونږ د پاره یو معبود جوړکړه لکه څنګه چه د دې خلقو معبود دې. موسی ﷺ اوفرمائیل چه تاسو خو ډیر جاهل خلق نی د الله تعالی عظمت مو هیرکړو هغه خود داسې خبرونه پاك دې چه څوك د هغه شریك یا د هغه په شان کیدې شی. د هغوی مذهب هم باطل دې اود هغوی عمل هم باطل دې.

بعضې صحابه رضی الله عنهم وانی چه مونږ حضور ﷺ سره د مکې نه حنین طرف ته روان وو په لارکښې د کافرانود بیرې یوه ونه وه. په کومه چه هغوی راجمع شوې وو او ناست وو. خپلې وسلې نی په هغه ونه کښې تړلې وې او د دې ونې تعظیم نی کولو. دې ونې ته به ونیلې شو "ذات انواط" کله چه مونږ دې ونې ته اورسیدونو هغه ډیره شنه او آباده وه نو مونږ رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو یارسول الله ﷺ! یو "ذات انواط" زمونږ د پاره هم اوګرخوه لکه څنګه چه د دې خلقو ده. نو حضور ﷺ اوفرمائیل چه په الله قسم تاسو خو هغه خبره اوکړه کومه چه د موسی ﷺ قوم موسی ﷺ ته کړې وه چه موسی ﷺ زمونږ د پاره هم یومعبود جوړکړه لکه څنګه چه د دې خلقو دې.نو موسی ﷺ فرمائیلې وو چه تاسو ډیر جاهلان نې. د دوی طریقه او اعمال ټول باطل دی. حضور ﷺ اوفرمائیل چه تاسو هم د هغوی په لار روانیدل غواړنی.(1)

قَالَ اَغَيْرَ اللّٰهِ اَبْغِيْكُمْ اِلٰهًا وَّهُوَ فَضَّلَكُمْ

اوونیل موسی آیا ماسوا دالله نه | زهٔ اولټوم تاسودپاره | بل معبود | حالانکه هغه| فضلیت درکړې دې تاسوته

موسی ورته اوونیل چې آیا زه تاسودپاره دالله ﷻ نه سوا بل معبوداوګورم | حال دا دې چې هغه تاسو ته (په موجوده زمانه کښې)

عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۴۰﴾ وَاِذْ اَنْجَيْنٰكُمْ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ

په خلقوباندې | اویادکړئ کله چې | نجات درکړومونږ تاسوته | دفرعون والونه

په نور مخلوق باندې فضیلت درکړې دې| اوهغه وخت یادکړه چې مونږ تاسو ته د آل فرعون نه نجات درکړو

يَسُوْمُوْنَكُمْ سُوْٓءَ الْعَذَابِ ۚ يُقَتِّلُوْنَ اَبْنَآءَكُمْ وَيَسْتَحْيُوْنَ

چې رسوو به نې تاسو ته | سخت عذاب | وژل به هغوئ | ځامن ستاسو| اوژوندئ به پریښودلې هغوئ

چې تاسو ته به نې ډیر تکلیفونه درکول | ستاسو ځامن به نې قتلول | اوستاسو جینکئ به نې

نِسَآءَكُمْ ۭ وَفِيْ ذٰلِكُمْ بَلَآءٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ عَظِيْمٌ ﴿۱۴۱﴾

ښځې ستاسو | اوپه دې کار کښې ستاسو دپاره | ازمینښت وؤ| دطرفه درب ستاسو نه | لوئ

ژوندئ پریخودلې | اوپه دې کښې ستاسو درب د طرفنه ډیرلوئي امتحان وو

(1) ترمذی کتاب الفتن باب ماجاء لترکبن سنن من کان قبلکم: ۲۱۸۰وهو صحیح، السنن الکبری للنسائی:۱۱۱۸۵، احمد:۲۱۸/۵، مسندابی یعلی:۱۴۴۱، ابن حبان:۶۷۰۲.

**قوله تعالي:: وَاِذْ اَنْجَيْنٰكُمْ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ يَسُوْمُوْنَكُمْ سُوْٓءَ الْعَذَابِ**

**دفرعودقیدنه خلاصي ورکونکي د عبادت لائق دي:-** موسیؑ بنی اسرائیلوته دالله ﷻ نعمتونه رایادوي چه الله تعالی تاسو ته د فرعون د قید او غلبي نه خلاصي درکړو اود رسوائي او ذلت نه ئي خلاص کړئي. دلته ئي درله برې او عزت درکړو. ستاسو دښمنان ئي ستاسو د سترګو په وړاندي برباد کړل؛ هغه نه سوا بل څوك د عبادت لائق دي. د دي پوره تفصيل په سورة بقره کښي تيرشوي دي

وَوٰعَدْنَا مُوْسٰى ثَلٰثِيْنَ لَيْلَةً وَّاَتْمَمْنٰهَا بِعَشْرٍ فَتَمَّ

اووعده اوکړه مونږه | دموسی سره | دیرش شپي | اوپوره کړي مونږه دادیرش | په لسو نورو باندي | نو پوره شو

اومونږ موسیؑ سره د دیرشو شپو وعده اوکړه | اوبیامو پرې لس ورځي زياتي کړي

مِيْقَاتُ رَبِّهٖٓ اَرْبَعِيْنَ لَيْلَةً ۚ وَقَالَ مُوْسٰى لِاَخِيْهِ هٰرُوْنَ

مقرره موده | درب دهغه | څلویښت | شپي | اواووئیل | موسی | رور خپل هارون ته

نود هغه دالله ﷻ سره نيته څلویښت شپي پوره شوه | اوموسیؑ خپل رور هارونؑ ته وئیلي وو

اخْلُفْنِيْ فِيْ قَوْمِيْ وَاَصْلِحْ وَلَا تَتَّبِعْ سَبِيْلَ

چي خليفه شئ زما | په قوم زما کښي | اوتيك كار كوه | اومه كوه پيروی | دلاري

چي زمانه پس قوم باندي زماخليفه شوئ | او صحيح كار كوه | او دهغه خلقو په رائي باندي عمل مه كوئ

الْمُفْسِدِيْنَ ۝

دمفسدانو |

كوم چي فساد كونكي دی |

**قوله تعالی:: وَوٰعَدْنَا مُوْسٰى ثَلٰثِيْنَ لَيْلَةً**

**د حضرت موسیؑ کوه طورته روانیدل اوهارونؑ جانشين جووول:-** بنی اسرائيلو باندي احسان کولي شي چه تاسو ته هدايت حاصل شو او موسیؑ الله تعالی سره کلام اوکړو. هغه تورات ورکړو په کوم کښي چه احکام دی اود شرع ټولي تفصيلي خبري دی. الله تعالی د موسیؑ سره د دیرشو ورځو وعده کړي وه. مفسرين وائی چه موسیؑ په دې ورځوکښي روژې نيولي وې. کله چه دا دیرش ورځي پوره شوې نو موسیؑ مسواك اووهلو. نو الله تعالی د نوررولسو ورځو حکم اوکړو چه څلویښت ورځي پوره کړه. اکثر مفسرين وائی ديرش ورځي د ذيقعدي او لس د ذوالحجه وې. دغه شان د اختر د ورځي پورې د څلويښتوورځو پوره والي اوشو. دې نه پس موسیؑ الله تعالی سره کلام اوکړو او هم په دغه ورځ دين محمدی هم کامل شو. لکه څنګه چه فرمائی په نن ورځ ما ستاسو دين کامل کړو خپل نعمت مي په تاسو پوره نازل کړو اوستاسو د پاره ئي دين اسلام اختيار کړو. غرض دا چه کله ميعاد پوره شو اوموسیؑ کوه طور طرف ته لاړو لکه څنګه چه الله تعالی فرمائيلي دی اې بنی اسرائيل! مونږ تاسو ته د دښمن نه خلاصي درکړو اود کوه طور ښي طرف ته موراغوښتي وې اوس موسیؑ په تلوکښي خپل رور هارونؑ خپل جانشين جوړ کړو اوحالات ښه ساتلود پاره ئي وصيت اوکړو دې د پاره چه فساد پيدا نه شي. داخبره د تنبيه او تذکير په توګه ده ګنی هارونؑ پخپله نبی وو اود وجاهت او جلالت والا نبی وو (والصلوة علی سائرالانبياء)

وَلَمَّا جَآءَ مُوسٰى لِمِيقَاتِنَا وَكَلَّمَهٗ

| اوهر کله چې | راغلو | موسی | مقررې نیټې زمونږ له | اوخبرې اوکړې دهغه سره

| اوهرکله چې موسی ﷺ زمونږ په مقرره نیټه راغلو | او الله ﷻ ورسره

رَبُّهٗ ۙ قَالَ رَبِّ اَرِنِىٓ اَنۡظُرۡ اِلَيۡكَ ؕ قَالَ

رب دهغه| نو اوونیل هغه | ائې ربه زما | اوښایه ماته خان خپل| چې اوګورم| تاته | اوونیل الله

خبرې اوکړې|نوهغه اوونیل چې ائې زماربه ماته خپل خان اوښایه |چې په سترګو دې اووینم| الله اوونیل

لَنۡ تَرٰٮنِىۡ وَلٰـكِنِ انْظُرۡ اِلَى الۡجَـبَلِ فَاِنِ اسۡتَقَرَّ

هرګز ته لیدلې نشې ما | لیکن اوګوره | دې غرته | نو که چرې|په قرارپاتې شو |

چې ته ما نشې لیدلې | (البته که ستا ډیر خواهش وی) نو دې غر ته اوګوره که په خپل خائې قلار پاتې

مَكَانَهٗ فَسَوۡفَ تَرٰٮنِىۡ ۚ فَلَمَّا تَجَلّٰى رَبُّهٗ لِلۡجَبَلِ

په خائې خپل |نو پس بیا به | ته لیدې شې ما | نو هر کله چې | ښکاره کړه جلوه|رب دهغه |هغه غرته

شو|نو ته به ما اولیدې شې | نو هرکله چې الله ﷻ په هغه غرباندې تجلی اوکړه

جَعَلَهٗ دَكًّا وَّخَرَّ مُوسٰى صَعِقًا ۚ فَلَمَّاۤ اَفَاقَ قَالَ

نو کړو ئې هغه | ذرې ذرې | اوراپریوتو | موسی | بې هوشه | پس هر کله چې | په هوش کښې راغې هغه | نو وې وئیل

نوهغه ئې ذرې ذرې کړو | او موسی ﷺ بې هوشه پریوتو | بیا چې کله په هوش کښې راغلو نو وې وئیل

سُبۡحٰنَكَ تُبۡتُ اِلَيۡكَ وَاَنَا اَوَّلُ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ ۝

پاک دې ذات ستا| ماتوبه اوویسته | تاته | اوزۀ | اولنې |ایمان راوړونکې یم |

چې ته پاک ذات یې ؛ ازه تاته توبه اوباسم | او په تاباندې اول ایمان راوړم

قوله تعالی:: وَكَلَّمَهٗ رَبُّهٗ

**دموسی ﷺ الله تعالی سره کلام کول:-** دموسی ﷺ متعلق خبرورکولې شی چه کله موسی ﷺ د وعدې خائې ته راغلو او هغوی ته د الله تعالی سره د کلام شرف اوعزت حاصل شو نو دا درخواست ئې هم اوکړو چه اې الله! زه تا لیدل غواړم ماته د کتلوموقع راکړه نو الله تعالی اوفرمائیل چه ته ما هیڅ کله نه شې لیدلې. لفظ ﴿لَنۡ﴾ کوم چه په ﴿لَنۡ تَرٰٮنِىۡ﴾ کښې دې د اکثروعلماؤ د پاره ئې اشکال پیداکړې دې خکه چه ﴿لن﴾ همیشه د پاره د نفی راځی.

**دمعتزلو د لن ترانی نه دالله ﷻ په نه لیدلو استدلال اودهغې جواب::** په دې بناباندې معتزلو استدلال کړې دې چه که دنیاوی که آخرت رؤیت نه شی کیدې. خودا قول ضعیف دې ځکه چه په دې باره کښې متواتر احادیث روایت شوی دی چه مؤمن ته به په آخرت کښې د الله تعالی دیدار کیږی. لکه چه الله تعالی فرمانیلی دی ﴿وُجُوۡهٌ يَّوۡمَٮِٕذٍ نَّاضِرَةٌ ۙ اِلٰى رَبِّهَا نَاظِرَةٌ ۝﴾ په دې کښې مؤمنانوته خوشخبری ورکړې شوې ده چه الله تعالی به لیدلې شی. بیاد کافرانوباره کښې وئیلی شوی دی چه هغوی به ئې نه شی لیدلې. لکه چه فرمانی ﴿كَلَّاۤ اِنَّهُمۡ عَنۡ رَّبِّهِمۡ يَوۡمَٮِٕذٍ لَّمَحۡجُوۡبُوۡنَ ۝﴾ اودا هم فرمانیلی شوی دی چه دا نفی ددنیا دپاره ده نه چه د آخرت دپاره.دغه شان اوس په کلام کښې مطابقت پیدا کیږی. په آخرت کښې رؤیت صحیح دې او په

دنیا کښې نه. اودا هم ونیلی شوی دی چه په دې مقام کښې کلام بالکل داسې دې لکه چه فرمائی لَا تُدْرِكُهُ الْاَبْصَارُ وَهُوَ يُدْرِكُ الْاَبْصَارَ وَهُوَ اللَّطِيْفُ الْخَبِيْرُ په سورة انعام کښې په دې باندې پوره بحث شوې دې. به وراندینوکتابونوکښې دی چه الله ﷻ موسی ﷺ ته اوونیل یوړوندې مادمرګ نه وراندې نه شی لیدلې اوچ خیزونه هم زما تجلئی سره فناکیږی. په دې وجه اوفرمائیلې شو چه کله رب خپله تجلی په غر باندې واچوله نو هغه ذره ذره شو او موسی ﷺ بې هوشه شو او راپریوتلو.

**په کوه طور الله ﷻ د تجلی اندازه:** دحضرت انس رضی الله عنه نه روایت دې چه حضور ﷺ فرمائیلی چه کله الله تعالی په غرباندې خپله تجلی اوکړه(هغه وخت هغوی په خپله ګوته باندې اشاره هم اوکړه) نو ذره ذره شو. ابو اسماعیل هم مونږ ته دا وینا کولو سره د شهادت په ګوته اشاره کولو سره اوخودل. د دې حدیث په روایت کښې یو راوی نوم مبهم دې نه دې خودلې شوې. حضور ﷺ آیت ﴿فَلَمَّا تَجَلّٰى﴾ لوستلو وخت کښې خپلې غټې ګوتې بند د ورې ګوتې په بندکیخودلو سره اوفرمائیل چه دومره تجلی خودلو په سبب غر ذره ذره شو. حمید ثابت ته اوونیل چه ګوره داسې ثابت خپل لاس د حمید په سینه باندې اووهلو او ونی ونیل چه رسول الله ﷺ داسې فرمائیلی دی. اوحضرت انس رضی الله عنه روایت کړې دې نو زه به هغه اوس پټوم؟([1]) امام احمد رحمه الله هم داسې روایت کړې دې. ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه الله تعالی د ګوتې د بند هومره تجلی کړې وه چه غر اوسوزیدو او ایره شو. سفیان ثوری رحمه الله فرمائی چه په زمکه کښې ورخښ شو او روان دې او ترقیامته پورې به هغه نه ښکاره کیږی. حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چه کله په غرونوباندې تجلی اوشوه نو شپږ غرونه خو والوتل،درې په مکه کښې راپریوتل او درې په مدینه کښې. په مدینه کښې احد دې ورقان دې رضوی دې. په مکه کښې حراء دې ثبیر دې او ثور دې داحدیث غریب دې بلکه منکر دې.

د تجلئی نه وراندې کوه طور متین او صفاوو د تجلئی نه پس غارونه او درې جوړې شوې. مجاهد رحمه الله فرمائی دا قول چه اې موسی! د غرطرف ته اوګوره که هغه قائم پاتې شو نو پوهه شه چه ته ما لیدلې شې ګنی نو نه شې لیدلې. داسې نې په دې وجه اوفرمائیل چه د غرپیدائش او استحکام خود انسان نه ډیر لوئ او سخت دې نو چه کله په غرباندې د الله تجلی اوشوه او ذره ذره نې کړو نود غردا کیفیت کتلو سره موسی ﷺ بې هوشه پریوتلو.د﴿صَعِقًا﴾ معنی ده د غوټې دوره راتلل لکه څنګه چه ابن عباس رضی الله عنه تفسیرکړې دې. قتاده رحمه الله د دې معنی مرګ اخلی اود لغت په رڼاکښې دا معنی صحیح هم ده لکه چه د قرآن شریف آیت دې ﴿وَنُفِخَ فِى الصُّوْرِ فَصَعِقَ﴾ یعنی چه شپیلئی پوک وهلې شی نو هرڅیز به مړشی او فنابه شی. غرض دا چه دلته قرینه د مرګ هم ده او د بې هوشئی هم. د بې هوشئی په دې وجه چه الله تعالی بیا اوفرمائیل ﴿فلما افاق﴾ او افاقه خو هم د بې هوشئی نه کیږی د مرګ نه نه کیږی په دې وجه هم د بې هوشئی معنی اخستل صحیح دی.

د افاقې نه پس موسی ﷺ اوفرمائیل اې الله ته پاك نې په تاباندې څوك نظر نه شی اچولې ګنی نو مړ به شی اوبه سوزی زه د رؤیت د سوال کولو نه توبه کوم. اوس ماته د دې یقین اوشو اود ټولونه وراندې ماته یقین اوشو. دلته د ایمان نه مراد ایمان اسلام نه دې بلکه ایمان او یقین د دې خبرې دې چه ستا مخلوق تا نه شی لیدلې.ابن جریر رحمه الله د دې آیت په تفسیرکښې د محمد بن اسحاق رحمه الله په روایت سره یوډیرعجیبه حدیث نقل کړېدې اوهغوی ته غالباداخبره داسرائیلیاتود دفتر نه ملاؤ شوې ده.والله اعلم

**دیهودی په مخ د یو انصاری صحابی څپیړه:** ﴿وَّخَرَّ مُوْسٰى صَعِقًا﴾ سره متعلق حضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه روایت دې چه یو یهودی راغلو او حضور ﷺ ته نې شکایت اوکړو چه ستاسو یو انصاری صحابی زه په

---

[1] احمد:۳/۱۲۵،ترمذی کتاب تفسیرالقرآن باب ومن سورة الاعراف:۳۰۷۴وسنده صحیح، حاکم:۲/۳۲۰.

مخ په خپیره اووهلم. هغه انصاری راوغوښتلو او حضورﷺ ترې تپوس اوکړو نو هغه اوونیل یارسول اللهﷺاما دا یهودی په دې ویناکولو سره اولیدو چه الله تعالی موسی ﷺ ته په ټولوانسانانو باندې فضیلت ورکړې دې نوماتپوس اوکړو چه آیا په محمدﷺ باندې هم نو ده اوونیل چه او.ماته غصه راغله او یوه څپیړه مې اووهلو. حضورﷺ اوفرمائیل چه ماته په انبیاؤ باندې فضیلت مه راکوئې خلق به د قیامت په ورځ بې هوشه شی او چه کله رابیدار شی نود ټولو نه وړاندې به زه بیدارشم خو زه به ګورم چه موسی ﷺ به د عرش پښه نیولې ولاړ وی. ماته نه ده معلومه چه زما نه وړاندې به هغه په هوش کښې راغلې وی یادا چه هغه به دسر نه بې هوشه شوې نه وی ځکه چه هغه یو ځل د کوه طور په تجلئ بې هوشه شوې دې. او الله تعالی به هغه د بې هوشه کیدو نه خلاص کړی([1]) په بخاری او مسلم کښې داروایت موجود دې.ابوبکر ابن ابی الدنیا وانی چه ددې قضیه خاوند حضرت ابوبکر ﷺ ووخو په بخاری اومسلم کښې دا خبره تیره شوې ده چه هغه د انصارو یوسړې وو او ابوبکرﷺ خود انصارونه وو هغه خو مهاجر وو.

**درسول کریم ﷺ فضیلت په ټولو انبیاءکرامو دې:** اوداخبره چه **(لاتخیرونی علی موسی)** په مثال د دې حدیث دې چه **(لاتفضلونی علی الانبیاءولاعلی یونس ابن متی)** ([2]) وانی چه داخبره د تواضع په سبب وه دا فرمان د دې نه وړاندې دې چه حضورﷺ ته د خپل فضیلت علم د الله تعالی د طرف نه شوې وی یا دا چه په غصه کښې ئې فرمائیلی وی چه ماته فضیلت مه راکوئې یا دا چه صرف په خپله رائې باندې فضیلت مه قائمه وئې. والله اعلم. خلق به د قیامت په ورځ بې هوشه کیږی او ښکاره خبره ده چه دا بې هوشی به د قیامت د هیبت د وجه نه وی. ډیره ممکن ده چه دا د هغه وخت حال وی چه کله به الله تعالی د خلقو په مینځ کښې د فیصلې د پاره راځی نود هغه په تجلئ سره به خلق بې هوشه شی. لکه څنګه چه موسی ﷺ تجلی نه وه برداشت کړې. په دې وجه حضورﷺ اوفرمائیل چه ماته نه ده معلومه چه زما نه وړاندې ورته افاقه شوې که دکوه طورد بې هوشئ په بدله کښې دلته بې هوشه نه شو. دحضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دې چه حضور ﷺ اوفرمائیل چه کله په حضرت موسی ﷺ باندې تجلی اوشوه نو د هغوی نظر دومره تیز شو چه د لسو کوسو په فاصله باندې د شپې په تیاره کښې به یو کانړې باندې تلونکې میږې لیدلې وو([3]) قاضی عیاض ﷫ اوفرمائیل چه په دې لحاظ باندې لرې نه ده چه دا خصوصیت زمونږ نبی ﷺ ته هم حاصل وی ځکه چه په معراج کښې حضورﷺ آیات کبری په خپلو سترګو لیدلې وو.ددې خبرې په ذریعه چه لکه د حدیث تصحیح ثابتیږی خو ددې صحت غوښتونکې خبره ده ځکه چه په دې حدیث کښې راویان غیرمعروف خلق دی اوداسې خبرې چه کله د عادل او ثقه راویانو سره منسوب نه وی نه شی قبلولې.

| قَالَ يٰمُوْسٰٓى | اِنِّيْ | اصْطَفَيْتُكَ | عَلَى النَّاسِ | بِرِسٰلٰتِيْ |
|---|---|---|---|---|
| اوونیل الله اې موسی | ابیشکه زهٔ چې یم | غوره کړې ما تهٔ | په خلقو باندې | په پیغمبرئ زماسره |

الله ورته اوفرمائیل اې موسی ما تهٔ په نورو خلقو کښې منتخب کړې یې ځکه چې رسالت مې درکړې دې

---

[1]) صحیح بخاری کتاب التفسیر سروه الاعراف (ولما جاء موسی لیقتاوکلمه ربه...): ۴۶۳۸، صحیح مسلم:۲۳۷۴، مسندابی یعلی:۱۳۶۸

[2]) صحیح بخاری کتاب احادیث الانبیاء باب قول الله تعالی (وان یونس لمن المرسلین) :۳۴۱۲، صحیح مسلم:۲۳۷۶ مختصرا

[3]) المعجم الصغیر :۳۲/۱ ح ۷۷.

| وَبِكَلَامِيْ ۖ | فَخُذْ | مَآ | اٰتَيْتُكَ | وَكُنْ | مِّنَ الشّٰكِرِيْنَ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوپه کلام زماسره | نواونیسه | هغه | چې زهٔ درکړم تا ته | او شه | دشکر گزارونه |

اوخبرې مې درسره کړې دي | نو چې څه حکمونه درکوم | هغه واخله او زما شکر کوه

| وَكَتَبْنَا | لَهٗ | فِي الْاَلْوَاحِ | مِنْ كُلِّ شَيْءٍ | مَّوْعِظَةً | وَّتَفْصِيْلًا |
|---|---|---|---|---|---|
| اواولیکلو مونږه | دپاره دهغه | په تختو کښې | دهر څیز نه | نصیحت | اوتفصیل |

اومونږورته په یو څو تختوباندې هرقسم نصیحتونه اودهرې مسئلې تفصیل لیکلې وو

| لِّكُلِّ شَيْءٍ ۚ | فَخُذْهَا | بِقُوَّةٍ | وَّاْمُرْ | قَوْمَكَ | يَاْخُذُوْا |
|---|---|---|---|---|---|
| دپاره دهر څیز | نو اونیسه هغه | په قوت سره | اوحکم اوکړه | قوم خپل ته | چې اونیسي هغوئ |

(ورته سوا اونیل) چې داهدایات کلک اونیسه او خپل قوم ته ددې خبرې حکم او کړه

| بِاَحْسَنِهَا ۭ | سَاُورِيْكُمْ | دَارَ الْفٰسِقِيْنَ ۝ |
|---|---|---|
| بهتر مطلب د هغې | دیر زر به اوښایم زهٔ تاسو ته | کوردفاسقانو |

چې ددې په غوره مطلب دې عمل اوکړی | زه به ډیر زر تاسو ته د بدکردارو خلقو کورونه اوښایم |

قوله تعالی:: قَالَ يٰمُوْسٰۤى اِنِّى اصْطَفَيْتُكَ عَلَى النَّاسِ

**دموسیٰ ؑ یوڅوامتیازی اوصاف**:- ارشاد دې او موسیٰ ؑ ته خطاب دې چه مونږ ته د رسالت او کلام د پاره د ټولو خلقو نه خوښ کړې او په دې کښې هیڅ شك نشته چه حضرت محمد ﷺ د آدم ټول اولاد سردار دې. ځکه خو الله تعالی هغوی خاتم الانبیاء جوړکړلو. د هغوی شریعت به د قیامته پورې جاری وی اود هغوی ﷺ امتیان به د ټولو پیغمبرانود امتونونه زیات وی. په شرف او عزت کښې د حضور ﷺ نه پس د حضرت ابراهیم خلیل الله مقام دې بیا د حضرت موسی ؑ بن عمران کلیم الله.

الله تعالی موسی ؑ ته فرمائی چه ما تاته کوم کلام او مناجات درکړی دی دا واخله او شکر ادا کړه اود کوم څیز د برداشت چه په تا کښې طاقت نه وی د هغې غوښتنه مه کوه. بیا خبر ورکولې شی چه په دې تختوکښې د هرې خبرې نصیحت او د هر حکم تفصیل موجود دې. ونیلې شی چه دا تختنې د مرغلرو وې الله تعالی په دې کښې مواعظ او احکام په تفصیل سره لیکلې وو او ټول حلال اوحرام ئې خودلې وو. په دې تختو باندې تورات لیکلې وو الله تعالی فرمائی چه وړاندینو پیړو هلاك کولونه پس مونږ موسی ؑ ته کتاب ورکړو په کوم کښې چه دخلقو دپاره بصیرت وو.دا هم ونیلې کیږی چه دا تختنې د تورات لیکلو نه وړاندې ورکړې شوې وې. بهر حال دا ضروری دی چه دا سوال د رویت د نامنظورکیدو معاوضه او بدله وه. پوره قوت سره ئې واخله یعنی د طاعت کلکه اراده اوکړه او خپل قوم ته هم حکم اوکړه چه په دې باندې په ښه شان سره عمل اوکړی. د موسی ؑ حکم سره د قوت لفظ دې اود موسی ؑ قوم سره د احسن لفظ دې یعنی موسی ؑ ته تاکید دې چه د ټولونه اول ته په دې باندې عمل اوکړه او ستاقوم دې هم په ښه طریقه په دې باندې عمل اوکړی. ﴿سَاُورِيْكُمْ دَارَ الْفٰسِقِيْنَ﴾ یعنی زر دی چه ته به زما د مخالفت کونکی اوزما د تابعدارئی نه سرکشی کونکو انجام اوګورې چه هغه به څنګه هلاك او برباد کیږی.دا خبره بالکل داسې ده چه سړې خپل مخاطب ته اووائی چه که تا زما د حکم مخالفت اوکړو نو صبا به زه تاسره ګورم. دلته د حکم نه خلاف کونکو ته وعیداو تهدید ورکولې شی اووئیلې شوی دی چه د دې مطلب دادې چه مونږ به تابعداری کونکوته د فاسقانو ملك

یعنی د شام ملك ورکوو یا دا چه د فرعون د قوم منازل مراد دی. خو اولنئی خبره ډیره قیاس ته نیزدې ده،والله اعلم. خکه چه دا فرمان د موسی ﷺ د مصر ښار پریخودو نه پس دې اودا بل قول خو بنی اسرائیلو ته خطاب دې اودا خطاب په میدان تیه کښې د داخلیدلو نه د وړاندې دې.

سَأَصۡرِفُ عَنۡ ءَايَٰتِيَ ٱلَّذِينَ يَتَكَبَّرُونَ فِي ٱلۡأَرۡضِ بِغَيۡرِ ٱلۡحَقِّ وَإِن يَرَوۡاْ

زر به واړوم زۀ دآیتونوزمانه | هغه کسان | چې تکبر کوی | په زمکه کښې | په ناحقه | اوکه اووینی هغوی

زر به زه دهغه کسانو مخونه دخپلوآیتونونه واړوم | چې کومو په زمکه کښې په ناحقه خان لوئې ګڼړلواوکه دوی

كُلَّ ءَايَةٖ لَّا يُؤۡمِنُواْ بِهَا وَإِن يَرَوۡاْ سَبِيلَ ٱلرُّشۡدِ لَا يَتَّخِذُوهُ

هره نښه | ایمان نۀ راوړی | په هغې | اوکه اووینی هغوئ لاره د نیکئ | نۀ نیسی هغوئ هغه

هرقسم نښې اووینی | خو (بیا هم) په هغې ایمان نه راوړی | اوکه نیغه لار ورته ښکاره شی | نو په هغې

سَبِيلٗا وَإِن يَرَوۡاْ سَبِيلَ ٱلۡغَيِّ يَتَّخِذُوهُ سَبِيلٗاۚ ذَٰلِكَ

په لار سره | اوکه اووینی هغوئ | لاره د ګمراهئ | نو نیسی هغه | په لارسره | دا خکه

باندې نه خی | ........اوکه کږه لار اووینی نو په هغې روانیږی | ................دا په دې وجه چې

بِأَنَّهُمۡ كَذَّبُواْ بِـَٔايَٰتِنَا وَكَانُواْ عَنۡهَا غَٰفِلِينَ

چې بیشکه هغوئ | دروغ ګڼړلي دی | نښې زمونږه | اوو هغوئ | دهغې نه | بې پرواه

دوئ زمونږ آیتونه دروغ ګڼړل | ........................اودهغې نه غافله وو

وَٱلَّذِينَ كَذَّبُواْ بِـَٔايَٰتِنَا وَلِقَآءِ ٱلۡأٓخِرَةِ حَبِطَتۡ

اوهغه کسان | چې دروغ ئې اوګڼړلې | نښې زمونږ ه | اوملاقات | د آخرت | ضائع شو

اوچا چې زمونږ آیتونه ............اوداخرت راتلل دروغ اوګڼړل | ..........................نو دهغوئ

أَعۡمَٰلُهُمۡۚ هَلۡ يُجۡزَوۡنَ إِلَّا مَا كَانُواْ يَعۡمَلُونَ

عملونه دهغوئ | آیا | بدله به ورکړې شی دوئ له | ماسوا | دهغې نه | چې وۀ دوئ | چې کول به ئې

عملونه تباه شو | هغوئ ته به نورڅه نه بلکه صرف دخپلو عملونو بدله ورکولې شی

قوله تعالی:: حَبِطَتۡ أَعۡمَٰلُهُمۡۚ

**د تکبرانجام اونتیجه:-** ارشاد کیږی چه مونږ هغه خلق د کومو چه زمونږ د اطاعت نه انکار دې او بغیر د څه وجې خلقو سره غرور کوی د شریعت او احکامو د پوهیدلو نه به ئې محروم کړو چه زمونږ په عظمت او وحدانیت باندې کلك دلیل دې. د دوی جهالت سره واسطه ده، الله تعالی دوی ذلیل کړی دی لکه چه فرمانئی مونږ د دوی زړونه او سترګې اولټه کړی دی خکه چه په پوهه کولو راپوهه کولو سره هم هغوی ایمان راونړلو. فرمائی چه هغوی کاږه شوی وو نو الله تعالی د هغوی زړونه هم کاږه کړل دې دپاره چه نه پوهیږی نو چه هډو پوهه نه شی.بعضې سلفو ونیلی دی چه غرور کونکې علم او معرفت هډو زده کولې نه شی هغه خو پوزه تره وه کړې وی[1] چا چه د څه وخت د پاره د علم زده کولو تکلیف برداشت نه کړو نو دې به د همیشه د پاره د علم نه د محروم کیدلو تکلیف برداشت کوی.

---

[1] صحیح بخاری کتاب العلم باب الحیاء فی العلم قبل حدیث: ۱۳۰

سفیان بن عیینه فرمائی چه الله تعالی د هغوی نه د قران کریم د فهم او پوهې ماده واخستله او د خپلو آیاتونونه ئې هغوی محروم کړل. ابن جریر فرمائی چې دا دلالت کوی په دې خبره چې دا خطاب دې امت ته دې خو زه وایم چې دا خبره څه ضروری نه ده. څکه چې د ابن عیینه رحمه الله د خبرې مطلب دادې چه دا د هرامت په حق کښې اود امتونوپه مینځ کښې څه فرق نشته . والله اعلم.

ارشاد دې چه هغوی هرڅنګه آیت ولې واونړی خوایمان نه راوړی. لکه چه فرمائی د کوموخلقو په حق کښې چه د الله تعالی کلمه پوره شوه چه هغوی به په نیغه لار نه راځی نو هغوی به هیڅ کله ایمان نه راوړی که هر څنګه آیاتونه ولې رانه شی. تردې چه دردناك عذاب راشی، اوکله چه د هدایت او خلاصی لار په هغوی باندې ظاهره کړې شی خو کله به هم نیغه لاراختیار نه کړی اوکه د هلاکت او ګمراهئی لاردهغوی په وړاندې راشی نودیر زر هغه اختیاروی.اوس دهغوی د دې نادانئی وجه بیانولې شی چه دا نتیجه ده د دې خبرې چه هغوی زمونږ آیاتونه دروغ اوګنړل اود هغې نه غافل پاتې شو اوپه هغې باندې ئې عمل اونه کړو. ارشاد دې چه هغه خلق د کومو چه زمونږ د آیاتونومنلو نه انکار دې اود قیامت په ورځ ئې زمونږ سره د مخامخ کیدو یقین نشته اوترمرګه پورې په دې خپل خیال باندې قائم پاتې شو نود ایمان سره نیك عمل نه کولو په وجه به دغه ټول نیك اعمال هم ضائعه شی او ختم به کړیشی. ارشاد دې چه د هغوی د اعمالو هم دغه بدله ده مونږ د هغوی اعمالو برابر بدله ورکوو. که چرې هغوی د ایمان سره نیکي کوله نو نیکه بدله به مو ورکوله او بدی خو هم بدی ده چه څنګه عمل وی نو هم هغه شان بدله وی.

| وَاتَّخَذَ | قَوْمُ مُوسٰی | مِنْ بَعْدِهٖ | مِنْ حُلِيِّهِمْ | عِجْلًا | جَسَدًا |
|---|---|---|---|---|---|
| اوجوړکړو | قوم د موسی | روستودهغه نه | دکالوخپلو نه | څخی | جوسه دار |

اودموسی علیه السلام قوم دهغه (کوه طور ته د تلو) نه پس دخپلو کالونه یو څخی جوړ کړو یوه تشه جوسه وه

| لَّهٗ | خُوَارٌ | اَلَمْ يَرَوْا | اَنَّهٗ | لَا يُكَلِّمُهُمْ | وَلَا |
|---|---|---|---|---|---|
| چې وو هغه دپاره | آواز | آیا نهٔ لیدل هغوی | چې بیشکه هغه | نهٔ کوی خبرې دهغوی سره | اونهٔ |

چې آواز به ئې کولو | آیادوی دومره هم نهٔ پوهیدل | چې نهٔ ئې ورسره خبرې کولې | اونهٔ ئې

| يَهْدِيْهِمْ | سَبِيْلًا | اِتَّخَذُوْهُ | وَكَانُوْا | ظٰلِمِيْنَ | وَلَمَّا |
|---|---|---|---|---|---|
| ښائی هغوی ته | لار | خواونیو هغوی هغه په خدایئ | اووو هغوی | ظالمان | اوهر کله چې |

ورته سمه لار خودله | خوبیا هم دوی هغه معبود جوړ کړلو | او په خان ئې ظلم اوکړو | اوهرکله

| سُقِطَ فِيْٓ | اَيْدِيْهِمْ | وَرَاَوْا | اَنَّهُمْ | قَدْ ضَلُّوْا |
|---|---|---|---|---|
| اوغورزولې شوه پښیمانئی په لاسونو دهغوی کښې | | اووې لیدل | چې بیشکه هغوی | ګمراهه شوی دی |

دوی خپل لاسونه اومروړل | ........ او وې کتل چې دوی ګمراه شوی دی

| قَالُوْا | لَئِنْ | لَّمْ يَرْحَمْنَا | رَبُّنَا | وَيَغْفِرْ لَنَا | لَنَكُوْنَنَّ |
|---|---|---|---|---|---|
| نووې وئیل | که چرې | اونهٔ کړو رحم په مونږ باندې | رب زمونږ | اووې نهٔ بښلو مونږه | نوخامخا به شو مونږه |

نووې وئیل که الله ﷻ راباندې رحم اونهٔ کړی | او مونږ ته معافی اونکړی | ........ نومونږ به

| مِنَ الْخٰسِرِيْنَ۝ |
|---|
| دنقصان موندونکونه |
| خواه مخواه د نقصان کوونکو نه شو |

قوله تعالی: وَاتَّخَذَ قَوْمُ مُوْسٰى مِنْۢ بَعْدِهٖ مِنْ حُلِيِّهِمْ عِجْلًا جَسَدًا لَّهٗ خُوَارٌ

**دسامري تيارکړي شوي سخي اودهغې حقيقت او نوعيت**:- په بني اسرائيلوکښې ګمراه خلقو د سخي عبادت کولو. سامري دهغه کالونه کوم چه دقبطيانونه قرض اخستي وو د هغوی د سرو زرو او سپينو زرو نه ئې يو د سخي په شان جوسه جوړه کړه اود هغې په خيټه کښې ئې يو يو موټې هغه خاوره واچوله چه د جبرائيل ﷺ د اس دپښونه ئې حاصله کړې وه. د دې سخي نه به داسې آواز راوتلولکه د غوا چه وی. دا هر څه دموسی ﷺ په غيرموجودګئی کښې اوشوچه هغه څه وخت د الله تعالی د ميقات په خاطر کوه طور ته تلې وو. په کوه طور باندې الله تعالی هغه د دې فتنې نه خبرکړو. نو موسی ﷺ ته خطاب کيږي چه اې موسی ﷺ! تانه روستو مونږ ستا قوم په ازميښت کښې واچولو يعنی سامري هغوی ګمراه کړل. (۱) مفسرينو په دې باره کښې اختلاف کړې چه آيا هغه د غوښې او وينې جوړ شوې وو او آوازونه ئې کول که هم د سرو زرو وو او صرف په هغه کښې هوا داخله شوې وه اود هغه نه به د غوا په شان آواز راوتلو. ونيلی شي چه د سخي د تياريدو نه پس کله نی د غوا په شان آوازونه کول نو هغوی به په ګډا د هغې نه چاپيره طواف کولو او په لويه فتنه کښې اخته شو او په خپل مينځ کښې به ئې ونيل چه هم دا دې ستاسو رب اود موسی ﷺ رب، موسی ﷺ په هيره کښې پريوتې دې. (۲) ارشاد دې چه آيا هغوی هم دومره خبره باندې نه پوهيږي چه آواز راوباسي نو څه اوشو هغه خو ستاسو د څه خبرې جواب نه شي درکولې اونه تاسو ته څه نقصان دررسولې شي او نه نفع(۳)په دې آيت کښې فرمائي چه نه هغوی سره څه خبره کولې شي او نه د هغوی څه لارخودنه کولې شي. دې د سخي عبادت کونکوته زورنه ورکولې شي چه سخې مو راواخستو ګمراه شونې. د زمکې او آسمان خالق مو هيرکړو. د هغوی په سترګو باندې د جهالت او ګمراهئی پردې پريوتې دی. لکه څنګه چه حضور ﷺ فرمائيلی چه د يو څيز محبت انسان ړوند اوکوڼ کړي (۴) اوچه کله دوی په خپل کارباندې پښيمانه شو او په پوهه کښې راغله چه واقعي مونږ ګمراه شوي يو نو وئي ونيل که الله تعالی په مونږ باندې رحم اونه کړي او زمونږ ښښنه اونه کړي نو مونږ به ډير په نقصان کښې شو او هلاك به شو. نو هغوی د ګناه اعتراف اوکړو او د الله تعالی په وړاندې ئې زاری منت اوکړو. بعضو د ﴿يَرْحَمْنَا﴾ په ځای باندې (ت)سره ﴿تَرْحَمْنَا﴾ او ﴿وَتَغْفِرْ﴾ لوستلې دې. دغه شان ﴿رَبَّنَا﴾ د فاعل کيدو په ځای منادی کيږي.

| وَلَمَّا | رَجَعَ مُوْسٰٓى | اِلٰى قَوْمِهٖ | غَضْبَانَ |
|---|---|---|---|
| اوهرکله چې | واپس راغې موسی | قوم خپل ته | په غصه |
| اوهرکله چې موسی دغصې او غم نه ډک خپل قوم ته واپس راغلو | | | |

---

(۱) ۲۰/طه: ۵۸.
(۲) ۲۰/طه: ۸۸.
(۳) ايضًا.
(۴) ابوداؤد كتاب الادب باب فی ذم الهوی: ۵۱۳۰، احمد: ۱۹٤/۵، مسندالشاميين: ۱٤٥٤.

| اَسِفًا | قَالَ | بِئْسَمَا | خَلَفْتُمُوْنِيْ | مِنْۢ بَعْدِيْ |
|---|---|---|---|---|
| افسوس کونکی | نووي ونیل | چې بدذې هغه | چې خلیفه کړی دې تاسوزما | روستو زمانه |

نود «راتلوسره نی» اوفرمانیل چې تاسو زما د تلو نه پس ډیرغلط کار کړې دې

| اَعَجِلْتُمْ | اَمْرَ | رَبِّكُمْ | وَاَلْقَى | الْاَلْوَاحَ | وَاَخَذَ | بِرَاْسِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| آیاتلوار اوکړه تاسو | دحکم | درب خپل نه | اووې غورزولې | تختې | اووې نیوو | سر |

آیادالله ﷻ دحکم راتلونه وړاندې موتلوار اوکړه | اودتورات تختې نی اوغورزولې | اوخپل رور

| اَخِيْهِ | يَجُرُّهٗٓ | اِلَيْهِ | قَالَ | ابْنَ اُمَّ | اِنَّ الْقَوْمَ |
|---|---|---|---|---|---|
| درور خپل | چې راکاږی هغه | خان طرفته | اوونیل هغه | انې خویه د مور | بیشکه چې دې خلقو |

«هارون ﷺ» نی د سر د ویښتونه اونیولو | اوخان ته نی راښکلو | هغه ورته اوونیل چې انې زماد مورخویه

| اسْتَضْعَفُوْنِيْ | وَكَادُوْا | يَقْتُلُوْنَنِيْ | فَلَا | تُشْمِتْ | بِيَ |
|---|---|---|---|---|---|
| ضعیف کړم زه | اونزدې وه | چې نی وژلې وې زه | پس مه | خوشحالوه | په مابانذې |

«ماڅه کولې شو» دې خلقوزماد خبرې پرواه اونه کړه | اونزدې وه چې زه نی قتل کړې وې | نو

| الْاَعْدَآءَ | وَلَا تَجْعَلْنِيْ | مَعَ الْقَوْمِ | الظّٰلِمِيْنَ | قَالَ | رَبِّ |
|---|---|---|---|---|---|
| دشمنان | اومه شاملوه ما | سره دقوم | ظالمانو | اوونیل موسی | انې ربه زما |

دښمنان راباندې مه خوشحالوه | اوظالمانو په ډله کښې مې مه شمیره | موسی ﷺ ا ووئیل انې ربه!

| اغْفِرْ لِيْ | وَلِاَخِيْ | وَاَدْخِلْنَا | فِيْ رَحْمَتِكَ | وَاَنْتَ | اَرْحَمُ |
|---|---|---|---|---|---|
| معاف کړه ما | او رور زما | او داخل کړه مونږه | په رحمت خپل کښې | او ته | زیات رحم کونکې نی |

ما ته بخشش اوکړه | او زما رور ته هم بخشش اوکړه | اومونږ خپل رحمت کښې داخل کړې | اوته د ټولونه زیات

| الرّٰحِمِيْنَ |
|---|
| درحم کونکو نه |

رحم کونکې یې

قوله تعالیٰ: وَلَمَّا رَجَعَ مُوْسٰٓى اِلٰى قَوْمِهٖ غَضْبَانَ اَسِفًا

**دموسی ﷺ دکوه طور نه واپس کیدل د قوم مشرک کیدل اود هارون ﷺ نه خفګان:-** موسی ﷺ چه کله الله تعالی سره خبروکولو نه پس خپل قوم ته واپس شو نو ډیر غصه وو او په خفګان او افسوس کښې وو. اوونی وئیل چه مانه پس تاسو د سخې په عبادت کولو سره ډیر خراب کار اوکړو. آیاد الله تعالی عذاب تاسو ډیر زر راغوښتل غوارنی اود الله تعالی دخبرو نه په اخواکولوسره تاسوما زر واپس کول غوارنی خوهم دغه خبره په تقدیرکښې وه. دډیرې سختې غصې نه نی هغه تختئی په زمکه باندې واچولې او رور نی دوبښتونه اونیولو اوخپل خان طرف ته نی راښکلو. ونیلې شی چه داتختئی د زمردو وې یادیاقوتو یادکیږې یادلرګی. ددې واقعې نه دلالت کیږی چه په دغه حدیث باندې کوم چه حضور ﷺ

فرمائيلي (ليس الخبر كالمعاينة) يعني شنيده كه بود مانند ديده([1]) يعني اوريدل كله وى به شان دليدلو.
او ظاهر دعبارت سياق دادې چه هغه غصه شواوتختني نى د خپل قوم په وراندې اوغورزوني. دا د سلفو او خلفو تولو جمهورو قول دې. ابن جرير رحمه الله روايت كړې دې چه دا قول غريب دې د دې سند صحيح نه دى. اكثرو علماو ونيلي دى چه دا د ردكولو قابل دې. كيدې شي چه د بعضې اهل كتابو دذخيرې نه قتاده رحمه الله نقل كړې دې او په اهل كتابو كنبې خو دروغ تصرف كونكي خبرې جوړونكي او زنديقان ډير دى.د روز سر نى اونيولو او راښكلو نى نو صرف په دې خيال چه خلق د سخى عبادت كولونه منع كولو كنبې هغه كوتاهي كړې او منع كړې نى نه وو. ونيل چه آيا تا زما د نافرمانئى جراءت كړې. نو هارون عليه السلام اوونيل چه اې زماد مورخويه زما د ږيرې او سر ويښته پريږده مه راكاږه زما خودا ويره وه چه چرته ته داسې اونه وانې چه زما انتظار دې ولې اونه كړو او په بني اسرائيلو كنبې دې تفرقه واچوله. اې روره دې خلقو خو زما هيڅ پرواه نه كوله ([2]) او زه نى كمزورې گنړلم اونيزدې وه چه زه نى قتل كړې ووم. ما پورې دښمنان مه خنده وه اوودې ظالمانونه مامه شميره. زماد مور د خوږ الفاظ نى په دې وجه اوونيل چه دا الفاظ اثر اوكړي.موسى عليه السلام ته رحم راشي گنى هغوى خودواړه دموريلار سكه رونړه وو.

هارون عليه السلام مسئله بيان كړې وه::كله چه موسى عليه السلام باندې د رور بې گناهي ثابته شوه نو هارون عليه السلام نى پريخودو. ارشاد دې چه هارون عليه السلام اول خلقو ته ونيلي وو چه اې خلقو تاسو په فتنه كنبې اخته كيږنى ستاسو رب دا سخى نه دې بلكه رحمن دې تاسو ما پسې روان شئ اوزما خبره واورئ ([3]) د دې د پاره خو موسى عليه السلام ونيلي وو چه الهى ما اوزما رور اوبښه مونږ دواړه ته په خپل رحمت كنبې واخله، ته ارحم الراحمين ئې. رسول الله ﷺ فرمائي چه الله تعالى دې په موسى عليه السلام باندې رحم اوكړي دكتونكي خبره جدا وى او د اوريدونكي خبره جدا وى.الله تعالى خبر وركړې وو چه تانه روستو ستا قوم په شرك كنبې اخته شوې دې. دې اوريدو سره هغه تختئى نه وې غورزولې او چه كله هغه په خپلو سترگو اوليدل نو د غصې د وجې نى تختئى اوغورزولې.([4])

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِنَّ الَّذِينَ | اتَّخَذُوا | الْعِجْلَ | سَيَنَالُهُمْ | غَضَبٌ |
| ابيشكه هغه كسان | چې نيولي ني دې | سخي | ازربه اورسيږي هغوئ ته | غضب |

| چا چې خخي معبود جوړ كړې دې هغوى به ډير زر دالله ﷻ په غضب كنبې گرفتارشي |
|---|

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِّن رَّبِّهِمْ | وَذِلَّةٌ | فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا | وَكَذَٰلِكَ | نَجْزِي | الْمُفْتَرِينَ |
| درب دهغوئ نه | او ذلت | په ژوند د دنيا كنبې | اودارنگې | بدله وركووْمونږه | دروغ جوړونكوته |

| او د دنيا په ژوند كنبې به ذليل شي ا......اومونږ په الله باندې دروغ تړونكو ته هم دغه شان سزا وركوو |
|---|

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَالَّذِينَ | عَمِلُوا السَّيِّئَاتِ | ثُمَّ | تَابُوا | مِن بَعْدِهَا | وَآمَنُوا | |
| اوهغه كسان | چې اوكړې بد عمل | بيا | توبه اوباسى | روستودهغې نه | اوايمان راوړى | |

| اوچا چې بد عملونه اوكړل بيا د هغې نه پس نې توبه اوويستله ا ............ اوايمان نې راوړو |
|---|

[1] احمد: ۲۷۱/۱وهوصحيح، مسندالبزاز: ۲۰۰، المعجم الكبير: ۱۲۴۵۱، مسندالشهاب: ۱۱۸۲، ابن حبان. ۶۲۱۳، حاكم: ۳۲۱/۲.

[2] ۲۰/طه: ۹۲، ۹۴.

[3] ۲۰/طه: ۹۰.

[4] احمد: ۲۷۱/۱ وهوصحيح.

| إِنَّ رَبَّكَ | مِنْ بَعْدِهَا | لَغَفُورٌ | رَّحِيمٌ |
|---|---|---|---|
| بیشکه رب ستا | روستو دهغه توبې نه | خامخابښونکې دی | رحم کونکې دی |

نوبیشکه ستارب روستو دهغې نه ښښونکې مهربان دی|

قوله تعالى:: ثُمَّ تَابُوا مِنۢ بَعْدِهَا وَآمَنُوا

**دسخی د عبادت نه دتوبې طریقه:**- د سخی دعبادت په سزا کښې د الله تعالی چه کوم غضب په بنی اسرائیلو باندې نازل شو هغه دا وو چه د هغوی توبه ترهغه وخته پورې قبوله نه شوه چه د الله تعالی په حکم باندې دې یو بل قتل کړی لکه چه په سورة بقره کښې تیر شوی دی چه د الله تعالی په دربار کښې داسې توبه پیش کړنی چه په خپل مینځ کښې یو بل قتل کړنی او الله تعالی هم په دې کښې ستاسو بهتری گنړی.او چه کله هغوی داسې اوکړل نو د هغوی توبه قبوله شوه هغه خو رب رحیم دې. (۱) خو په دنیاکښې هغوی ته ذلت او خواری نصیب شوه. ارشاد دې ﴿وَكَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُفْتَرِينَ﴾ او دا ذلت خو د هر یو مفتری د پاره د قیامت د ورځې پورې دې.

**د بدعتی سزا:**:سفیان بن عیینه رحمه الله فرمانی چه دغه شان به هر بدعت کونکې ذلیل کیږی. چه څوك بدعت راوباسی هغوی ته به هم دغه سزا ملاویږی.درسول د مخالفت اوبدعت بوج به د هغوی د زړونونه راوځی اودهغوی په اوږو به راپریوځی. حسن بصری رحمه الله فرمانی چه سره د دې چه هغه دنیاوی شان اوشوکت لری خو ذلت او رسوائی د هغه په مخ باندې وریږی. د الله تعالی د طرف نه به ترقیامته پورې دا سزا دروغ ترونکو او د ځان نه خبرې کونکو یعنی افتراکونکو ته ملاویږی. الله تعالی توبه قبلونکې دې. که گناه هرڅنگه ولې نه وی خو الله تعالی د توبې نه پس هغه معاف کوی که کفر شرك شقاق او نفاق ولې نه وی. حکم کیږی چه څوك د گناه نه پس توبه اوکړی او ایمان راوړی نو اې د رحمتونورسول ﷺ ستا رب د هغې نه پس هم ښښونکې او مهربان دې. د ابن مسعود رضی الله عنه نه سوال اوکړې شو د داسې سړی باره کښې چه یوې ښځې سره زنا اوکړی او بیا هغې سره نکاح اوکړی نو د ده باره کښې به څه وی؟ نو د دې آیت تلاوت نی اوکړو. چه کومو خلقو خراب کارونه اوکړل او بیا نې توبه اوکړه ایمان نی راوړو او په نیغه لار شو نو الله تعالی د دې نه پس هم ښښونکې او مهربان دې. عبدالله رضی الله عنه د دې لس ځل تلاوت اوکړو.(۲)

| وَلَمَّا سَكَتَ | عَن مُّوسَى الْغَضَبُ | أَخَذَ الْأَلْوَاحَ | وَفِي نُسْخَتِهَا | هُدًى |
|---|---|---|---|---|
| اوهرکله چې سړه شوه | دموسی نه غصه | نو راوانې خستې تختې | او د هغې په لیکلې شوی کښې | هدایت |

اوهرکله چې دموسی علیه السلام غصه سړه شوه | نوتختې نې راوچتې کړې | اودهغې په مضامینو کښې دهغه کسانو

| وَرَحْمَةٌ | لِّلَّذِينَ | هُمْ | لِرَبِّهِمْ | يَرْهَبُونَ |
|---|---|---|---|---|
| اورحمت وو | دپاره دهغه کسانو | چې هغوی | د رب خپل نه | ویریږی |

دپاره هدایت او رحمت وو کوم چې دخپل رب نه ویریدل|.......................

قوله تعالى:: وَفِي نُسْخَتِهَا هُدًى

**موسی علیه السلام اوامت محمدیه ﷺ**:- الله تعالی فرمانی چه کله دموسی علیه السلام غصه کمه شوه نو هغه تختې اوچتې کړې کومې چه نی د سختې غصې په وجه غورزولې وې. داحرکت په بت پرستنی باندې غیرت

(۱) احمد:۲۷۱/۱ وهوصحیح.
(۲) الدرالمنثور:۵٦٦/۳.

او د غصې د وجې نه وو. ارشاد دې چه په دې کښې هدایت او رحمت وو د هغه خلقو د پاره څوك چه د الله تعالی نه ویریدل. اکثر مفسرین وائی چه کله نی هغه اوغورزولې نو ماتې شوې وې بیانې هغه راجمع کړې او هم په دې بنا باندې بعضې سلفو ونیلی دی چه په دې ماتوتختوکښې د هدایت او رحمت احکام درج وو خو په تفصیل سره متعلق احکام ضائع شو. گمان کولې شی چه د اسرائیلی بادشاهانو په خزانوکښې د اسلامی حکومت زمانې پورې دا ټکړې موجود وې. والله اعلم خو په دې خبره باندې دلیل واضح نشته چه غورزولو سره هغه ماتې شوې وې هغه تختنی د جنت د کاڼو نه جوړې وې. الله تعالی دومره خبرورکړې دې چه کله نی هغه اوچتې کړې نو په هغې کښې نی هدایت او رحمت اوموندلو. د رهبت معنی کښې خشوع او خضوع ده په دې وجه یې متعدی کړه په لام سره (أَخَذَ الْأَلْوَاحَ) سره متعلق قتاده ؒ فرمائیلی دی چه موسی ﵇ ونیل اې ربه! چه زه په تختوکښې لیکلې شوې وینم چه یو بهترین امت به وی چه همیشه به ښې خبرې ښائی او د خرابوخبرو نه به منع کول کوی. اې الله تعالی هغه امت به زما امت وی نو الله تعالی اوفرمائیل چه اې موسی ﵇! هغه به د احمد ﷺ امت وی. بیا موسی ﵇ اوفرمائیل چه اې ربه! د دې تختونه د یوداسې امت پته لگی چه د ټولونه به په آخره کښې پیدا کیږی خو جنت ته به د ټولونه اول داخلیږی یا الله هغه دې زما امت وی. الله تعالی اوفرمائیل چه هغه د احمد ﷺ امت دې. بیا موسی ﵇ اوفرمائیل یا الله د هغه امت قرآن به د هغوی په سینوکښې وی په زړه کښې به گوری او لولی به حالانکه د هغوی نه وړاندې ټولوخلقوبه په خپل قرآن باندې نظر اچولو سره لوستلو په زړه سره به نی نه لوستلو تردې چه د هغوی قرآن به کله اوچت کړې شو نو بیا به هغوی ته هیڅ هم یاد نه وو او نه به هغوی څه پیژندلې شو. الله تعالی هغوی ته د حفظ داسې طاقت ورکړې چه یو امت ته هم نه دې ورکړې شوې. یا ربه! هغه دې زما امت وی. الله تعالی اوفرمائیل اې موسی ﵇! هغه د احمد ﷺ امت دې. بیا موسی ﵇ اوفرمائیل چه هغه امت به ستا په هر یو کتاب باندې ایمان راوړی او گمراهانو او کافرانو سره به جنگ کوی تردې چه کاڼړی دجال سره به هم جنگ کوی، الهی هغه دې زما امت وی نو الله تعالی ارشاد اوفرمائیلو هغه به د احمد ﷺ امت وی. بیا موسی ﵇ عرض اوکړو چه اې الله په دې تختوکښې د یو داسې امت ذکر دې چه هغوی به خپلې منختې اوصدقې په خپله په خپل مینځ کښې خوری حالانکه د دې امت نه د وړاندینو امتونوبه څه حال وی که هغوی څه صدقه یا منخته پیش کړی او هغه قبوله شی نو الله تعالی به یو اُور راولیگی او هغه اُور به هغه اوخوری اوکه نه قبلیږی نو رد کولې به شی نوبیا به هم هغوی هغه نه خوری بلکه ځناور او مرغنی وغیره به راځی او هغه به خوری. او الله تعالی به د هغوی صدقې د هغوی د مالدارانونه اخلی او د هغوی غریبانانو ته به نی ورکوی. نو موسی ﵇ ونیل چه اې ربه دغه زما امت کړې نو الله تعالی اوفرمائیل هغه به د احمد ﷺ امت وی. بیا نی اوونیل اې ربه! زه په دې تختوکښې وینم که هغوی د څه نیکئی اراده هم اوکړی او په عمل کښې هغه کار رانه ولی نو بیا به هم د یو ثواب حقدار وی او که په عمل کښې راولی نو لس حصې ثواب به ورته ملاویږی بلکه تر اووه سوو پورې هغه ونیل چه اې الله هغه دې زما امت وی نو الله تعالی اوفرمائیل چه هغه به د احمد ﷺ امت وی. بیا نی اوفرمائیل چه په دې تختو کښې دی چه هغوی به د نورو شفاعت هم کوی او د نورو طرف نه به هم د هغوی شفاعت وی. ونی ونیل اې الله هغه به زما امت وی نو الله تعالی اوفرمائیل نه، دا به د احمد ﷺ امت وی قتاده ؒ فرمائی چه موسی ﵇ بیا تختنی کیخودې او ونی ونیل اې ربه! ما د دغه احمد ﷺ د امت نه جوړکړه.

| وَاخْتَارَ مُوسٰى | قَوْمَهٗ | سَبْعِيْنَ | رَجُلًا | لِّمِيْقَاتِنَا | فَلَمَّا |
|---|---|---|---|---|---|
| اوخوښ کړل موسی | دقوم خپل نه | اویا | سړی | دپاره دمقررشوی وخت زمونږه | پس هر کله چې |
| او خوښ کړل موسی ﵇ د خپل قوم نه اویا کسان | | | | چې زمونږ مقرري (نیټې) ته راشي | بیا چې کله |

أَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ قَالَ رَبِّ لَوْ شِئْتَ أَهْلَكْتَهُم

اونیول هغوئ | زلزلې | اوونیل هغه|اې ربه زما|که خوښه وه ستا|نوهلاک کړې به وو تا دوئ

هغوئ باندې زلزله راغله | نوموسی ﷺ اوونیل چې اې زمار به که تاغوښتلې | نودوئ

مِّن قَبْلُ وَإِيَّايَ ۖ أَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ السُّفَهَاءُ

مخکښې ددې نه| اوخاص زۀ هم|آیاتهٔ هلاکوې مونږه |په هغه کار| چې کړېدې|یوځو بې وقوفانو

اوزۀ به دې وړاندې هلاک کړې ووا آیا مونږ ټول په هغه(جرم)هلاکوې | چې دیوځوکم عقلودلاسه شوې دې

مِنَّا ۖ إِنْ هِيَ إِلَّا فِتْنَتُكَ ۖ تُضِلُّ بِهَا مَنْ تَشَاءُ

زمونږه نه|نهٔ دې داکار| مګردې یوازمیښت ستا| ګمراهه کوې تهٔ|په دې سره|هغه څوک| چې غواړې تهٔ

دا خو صرف ستا یو امتحان ووا .................. چې څوک دې خوښ شي نو هغه ګمراه کوې

وَتَهْدِي مَنْ تَشَاءُ ۖ أَنْتَ وَلِيُّنَا فَاغْفِرْ لَنَا

اوهدايت کوې تهٔ | هغه چاته | چې غواړې تهٔ | تهٔ ئې | سرپرست زمونږ | نو ښښنه اوکړه | مونږ ته

او چې څوک دې خوش شي نو هغه ته هدايت کوې | زمونږ سرپرست خوتهٔ یې | نومونږ معاف کړه

وَارْحَمْنَا ۖ وَأَنْتَ خَيْرُ الْغَافِرِينَ ۝ وَاكْتُبْ لَنَا

اورحم اوکړه په مونږ باندې | اوتهٔ | بهتره | ښښونکې ئې | اواولیکه | دپاره زمونږه

او په مونږباندې رحم اوکړه | بیشکه ته ټولونه زيات معافي کونکې یې | اوزمونږ دپاره په دې

فِي هَٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الْآخِرَةِ إِنَّا هُدْنَا إِلَيْكَ ۚ

په دې دنيا کښې | نيکي | اوپه آخرت کښې هم | بيشکه |رجوع اوکړه مونږه | تاته |

دنیا کښې هم نیکي او په آخرت کښې هم نیکي اولیکه|مونږ تاته رجوع کړې ده|

**قوله تعالى:: فَلَمَّا أَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ**

**په کوه طورباندې دَ اویاوکسانو مرګ:-** الله تعالى موسى ﷺ ته د اویاؤ کسانو د سړوخوښولوحق ورکړې وو. موسی ﷺ دغه اویا کسان خلق واخستل اود الله تعالى د دعا د پاره نې بوتلل. خو چه کله هغوی الله تعالى ته دعا اوکړه نو داسې وه چه اې الله تعالى مونږ ته هغه څه راکړې چه تراوسه پورې دې زمونږ نه وړاندې چاته نه وی ورکړې اونه زمونږ نه پس نې بیا چاته ورکړې. دا خبره د الله تعالى ناخوښه شوه نو هغوی زلزلې راګیرکړل. (۱)

**کوه طور کښې په بې ادبئ دبنی اسرائیلو هلاکت اود موسی ﷺ دعا::** سدی رحمه الله فرمانی چه الله ﷻ موسى ﷺ ته د دریو سړوسره د راتلو د پاره ونیلې وو چه دسخی په عبادت کولو سره ټول د الله تعالى نه معافي اوغواړي اود دعا د پاره نې یووخت او مقام مقرر کړو. موسی ﷺ اویا کسان خوښ کړل چه د اعتذار د پاره نې خان سره بوتلل خو چه کله د وعدې خائ ته اورسیدل نو وئي ونیل چه اې موسى ﷺ! مونږ خو به تر هغه وخته پورې په تا باندې ایمان نه راوړو ترڅوچه په خپلو سترګو ښکاره الله

(۱) الطبری: ۱۳/۱۴۱.

تعالى اووينو(¹) تاخو الله تعالى سره خبرې اوكړې اوس مونږ ته هم الله تعالى اوښايه. د دې په سزاكښې په هغوى باندې تندر راپريوتلو او ټول نې هلاك كړل. حضرت موسى ﷺ په ژړاكښې پاسيدو او الله تعالى ته نې داسې ونيل چه يا الله! اوس به زه بنى اسرانيلو ته څه جواب وركوم دا خو په هغوى كښې ښه خلق وو هغه هم تا مړه كړل. افسوس! يا الله چه زه دې هم دوى سره مړ كړې ووم. (²) موسى ﷺ د بنى اسرائيلو د ښو نه ښه كسان خوښ كړې وو او ونيلې وو چه روان شئ د الله تعالى طرف ته اود خپل باقى قوم د طرف نه الله تعالى ته معذرت پيش كړئ. توبه اوباسئ روژې اونيسئ بدنونه او كپړې پاكې كړئ اوبيا ئې هغوى په مقرر وخت باندې طور سيناء طرف ته بوتلل اودا هر څه د الله تعالى په علم او اجازت سره وو. اوس دا ټول اويا كسان كوم چه د موسى ﷺ په رهنمانۍ كښې الله تعالى سره د ملاويدلو د پاره راغلې وو ونيل موسى ﷺ الله تعالى سره خو ستا خبرې كيږى دغه خبرې مونږ ته هم واوروه.موسى ﷺ ونيل ښه ده، كله چه موسى ﷺ غرته ورنيزدې شو نو هغه په يوه ډيره كڼه او را اوچته شوې اوريخ كښې دننه پټ شو. غرهم په اوريخ كښې پټ شو.موسى ﷺ په اوريخ كښې راغلو قوم ته ئې اوونيل تاسو هم رانيزدې شئ. موسى ﷺ چه به كله الله تعالى سره كلام كولو د هغه په مخ به يوډير پړقيدونكې نور او رڼا وه چه چا به د هغه په مخ د كتلود پاره نظر نه شو اچولې. په دې وجه دې په حجاب كښې شو او قوم. را نيزدې شو او دې اوريخې ته داخل شو نو په سجده كښې پريوتل او هغوى د موسى ﷺ اود الله تعالى خبرې واوريدې چه الله تعالى موسى ﷺ ته امر وركوى او نهى كوى چه دا كوه دا مه كوه اوچه دې نه فارغ شو اوريخ اخوا شوه نو موسى ﷺ دې خلقو ته متوجه شو نو هغوى موسى ﷺ ته اوونيل چه مونږ خو به هغه وخت په تا باندې ايمان راوړو چه دغه شان په ښكاره باندې مونږ ته الله تعالى ښكاره كړې.(³) په ګستاخئ كښې هغوى تندر راګيركړل د هغوى روحونه د بدنونونه اووتل او مړه شو. موسى ﷺ چه دا اوكتل نو الله تعالى ته ئې سوال زارى شروع كړه چه اې الله كه تا دوى هلاك كولو غوښتل نو دوى سره به دې زه هم هلاك كړې ووم هغوى د بې وقوفئ حركت اوكړو آيا هغه څوك چې زما شاته دى بنى اسرائيل هلاك كوې.

**دهارون ﷺ د وفات قيصه::** د على‌ﷺبن ابى طالب نه روايت دې چه موسى ﷺهارونﷺ شبراو شبير ټول يوځائ د يوغرلمن طرف ته لاړل. هارون ﷺ په يوه غونډئ باندې ولاړوو چه الله تعالى هغه ته مرګ وركړو. موسى ﷺ بنى اسرائيلو له راغلو نو هغوى د هارون ﷺ تپوس اوكړو. موسى ﷺ ونيل هغه مړ شو. هغوى ونيل چه نه تابه قتل كړې وى هغه خو ډير نرم مزاج او د ښه خونى والا سړې وو. موسى ﷺ ونيل چه ښه ده تاسو څه كسان خوښ كړئ نو هغوى اويا كسان غوره كړل نود هارون ﷺ لاش له لاړل او تپوس نې اوكړو چه هارونﷺ ته چا قتل كړې؟ د هارون ﷺ نه آواز راغلو چه زه خو چا هم نه يم قتل كړې زه خو په خپل مرګ مرشوې يم. اوس دې خلقو ونيل اې موسى ﷺ مونږ به دې نه پس تانه چرې هم سركشى نه كوو. سزا نې دا شوه چه هغوى يو آواز راګيركړل. موسى ﷺ به بنى او كس طرف ته بې معنې راتاويدلو او ونيل به ئې چه آيا اې الله ته به د دې بې شرمو په خبرو اترو مونږ هلاك كوې.دا ستا ازمينښت دى نو چه څوك غواړې هلاك نې كړې او چه څوك غواړې نو هدايت وركړې نو الله تعالى دا ټول راژوندى كړل او هغه ټول نې انبياء جوړكړل.

دا ډير غريب او ناقابل يقين حديث دې. په راويانوكښې عماره بن عبيده خو بالكل مجهول سړې دې. ابن جريرﷺ وائى چه په دې وجه په هغوى عذاب نازل شوې وو چه د سخى په عبادت باندې چپ چاپ

---

(¹) ۲/البقره: ۵۵.
(²) الطبرى:۱۴۱/۱۳.
(³) ۲/البقره: ۵۵.

ولاړوو کتلې نی او قوم نې د دې شرك نه نه منع کولو. په دې وجه موسی ﷺ دوی ته د بې وقوفانو نوم ورکړې وو اوونیلې وو چه اې الله دا ستا ازمیښت او امتحان دې. نو د الله تعالی نی داسې حمد اوثنا اوکړه چه دا خو هم ستا د طرف نه امتحان دې او هم ستا حکم چلیږي او ته چه څه غواړې نو هم هغه کیږي. هدایت او ګمراهي خو هم تاسره دې. چاته چه ته لار اوښائینې هغه څوك اړولې نه شي او څوك چه ته ګمراه کړې هغه ته څوك لار خودنه نه شي کولې. ته چه چاته ورکول بند کړې هغه ته هیڅ څوك نه شي ورکولې او چاته چه ته ورکړې هغه نه نی څوك اخستې نه شي. د ملك مالك خو صرف هم ته نې او د حکم حاکم صرف هم ته نې خلق او امر ټول هم ستا د طرف نه دی.

بیا موسی ﷺ دعااوکړه اې الله ته زمونږ ولی نې مونږ اوبښې او په مونږ باندې رحم اوکړې. نه خیرالغافرین نې. د غفرمعنی ده ډوبول پټول او په ګناه باندې نه راښیول اود غفران سره چه کله رحمت یوځائی شی نودا مطلب دې چه د ښښنې نه پس بیا الله تعالی هغه ته په راتلونکی وخت کښې په ګناه کښې اخته نه کړی. اې الله مونږ ته په دنیاکښې هم نیکی راکړې او په آخرت کښې هم.د (حَسَنَةً) تفسیرپه سورة بقره کښې تیرشوې دې مونږ توبه کوو او هم ستا طرف ته واپس ګرځیدونکی یو.حضرت علی ﷺ وائی چه د دوی نوم یهود ځکه شو چه هغوی (هُدْنَآ اِلَيْكَ ط) ونیلې وو.

| قَالَ عَذَابِيٓ | أُصِيبُ | بِهٖ | مَنْ | اَشَآءُ | وَرَحْمَتِيْ | وَسِعَتْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوونیل الله عذاب زما | رسوم زهٔ | دغه عذاب | هغه چاته | چې غواړم | اورحمت زما | فراخه دي |
| الله ورته جواب کښې اوونیل چې دعذاب حال مې دادې اچې چاته نې اوغواړم انو هغه ته نې و رکوم اوزمارحمت هر یو | | | | | | |

| كُلَّ شَيْءٍ ط | فَسَاَكْتُبُهَا | لِلَّذِيْنَ | يَتَّقُوْنَ |
|---|---|---|---|
| په هرخیز باندې | پس زرده چې اولیکم زهٔ دارحمت | دپاره دهغه کسانو | چې خان ساتي دنافرمانۍ نه |
| خیز ته شامل دې | ....... اوهغه به زهٔ دهغې چا دپاره اولیکم | چې د ګناهونو نه خان ساتي | | |

| وَيُؤْتُوْنَ | الزَّكٰوةَ | وَالَّذِيْنَ | هُمْ | بِاٰيٰتِنَا | يُؤْمِنُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوورکوي | زکاة | اوهغه کسان | چې هغوی | په آیتونو زمونږه | ایمان راوړي |
| اوزکوة ورکوي اوهغه خلق چې زمونږ په آیتونو باندې ایمان راوړي | | | | | |

قوله تعالی: وَرَحْمَتِيْ وَسِعَتْ كُلَّ شَيْءٍ ط

**د الله تعالی د رحمت فراخوالې:-** موسی ﷺ ونیلې وو اې الله دا ستا فتنه او ستا عذاب دې. نو ارشاد کیږي چه عذاب هغه ته ور رسی د چا د پاره چه زما اراده وی چه ده ته عذاب کیدل پکار دی ګنی زما رحمت خو په هر څیز باندې وسیع دې زه چه څنګه غواړم کوم. په هره خبره کښې حکمت او عدل هم زما حق دې. د رحمت والا آیت ډیر عظیم دې او ټولو ته شامل دې. لکه د عرش اوچتونکو فرښتو په ژبه کښې ارشاد کیږي چه اې الله تعالی! ستا رحمت او ستا علم په ټولو حاوی دې.

وائی چه یو اعرابی راغلو اوښه نی کینوله او وئی تړله. بیا نې حضور ﷺ پسې مونځ اوکړو. د مانځه فارغ شو او خپله اوښه نی پرانسته په هغې باندې سور شو اودا دعانی اوکړه اې الله تعالی! په ما او په حضرت محمد ﷺ باندې خپل رحمت اوکړه اوزمونږ په رحمت کښې هیڅ څوك مه شریکوه. نو حضور ﷺ صحابه کرامو رضی الله عنهم ته اوفرمائیل اوښائینې دې ډیر ګمراه او بې وقوف دې که د ده اوښ؟ تاسو واوریده څه چه ده اوونیل؟ هغوی اوونیل او. حضور ﷺ اوفرمائیل د الله تعالی ډیر وسیع رحمت دې هغه د رحمت سل حصې جوړې کړی دی یوه حصه نی په ټول مخلوق باندې تقسیم کړې. پیریانو

انسانانو او بهائمو ته تولو ته د دې يوې حصې نه رحمت ملاويږي او باقي يو کم سل (۹۹) حصې ئې د خپل خان د پاره خاص کړې. اوس تاسو اوښانې چه په دې دواړو کښې څوك ډير بې وقوف دې. (۱) الله تعالى د خپل رحمت سل حصې کړې دی په کوموکښې چه صرف يوه حصه دنيا ته راکوزه کړې ده او هم په دې سره مخلوق په يوبل ترس خوري. هم دې سره ځناور خپلو بچو سره نرمي او د رحم سلوك کوي. باقي يوکم سل حصې هم هغه سره دی د کومو اظهار چه به د قيامت په ورځ کيږي (۲) اود قيامت په ورځ به هم د دې حصې نه او د يوکم سلو حصونه کوم چه مؤخر کړې شوی دی يوځاې کوی به ئې(۳)په يو روايت کښې دی چه هم ددې يوې نازل کړې شوې حصه کښې ځناور اومرغنې شامل دی (۴) په الله تعالى قسم چه د دين په لحاظ باندې فاجر دی، کار کسب او معاش په لحاظ بې وقوف دی هغوی هم په دې کښې شامل دی. د الله ﷻ قسم هغه به هم جنت ته ځي. څوك چه اُور د ګناه په سبب راګيرکړې وی د هغه رحمت به د قيامت په ورځ داسې راخورشي چه ابليس ته به هم د هغې نه د څه حصې ملاويدلو توقع پيدا شي(۵)داحديث ډيرغريب دې او سعد په دې کښې يو غيرمعروف سړې دې. د الله ﷻ د رحمت مستحق څوك دی؟ زما د رحمت حقدار به هغه وی څوك چه ما نه ويريږی او پرهيزګاری اختياروی. لکه چه فرمائي ستاسو رب د خپل ذات د پاره رحمت فرض ګرځولې دې. پرهيزګاری کوی يعني د شرك اوکبيره ګناهونو نه ځان بچ کوی اوزکوة ورکوی. وئيلې شي چه د زکوة نه مراد د نفوسوزکوة دې يا د مالونو زکوة يا دا دواړه مراد دی ځکه چه دا آيت مکی دې او هغه خلق کوم چه زمونږ آياتونه منی اود دې تصديق کوی.

| يَجِدُونَهُ | الَّذِي | الْأُمِّيَّ | النَّبِيَّ | الرَّسُولَ | الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ |
|---|---|---|---|---|---|

هغه کسان چې پيروی کوی| ددې رسول | چې نبی دې | امی دې | هغه رسول اچې مومي هغوی دهغه (دارحمت، هغه څوك (بيامومی)چې ددې پيغمبرچې امی نبی دې تابعداری کوی |دچا ذکرچې دوی خپل ځان سره په

| يَأْمُرُهُم | وَالْإِنجِيلِ | فِي التَّوْرَاةِ | عِندَهُمْ | مَكْتُوبًا |
|---|---|---|---|---|

ليکلې شوې | په نيز خپل | په تورات کښې | اوپه انجيل کښې |هغه حکم کوی هغوی ته تورات او انجيل دواړو کښې ليکلې بياموميا ............اوهغه دوی ته د

| الطَّيِّبَاتِ | لَهُمُ | وَيُحِلُّ | عَنِ الْمُنكَرِ | وَيَنْهَاهُمْ | بِالْمَعْرُوفِ |
|---|---|---|---|---|---|

په نيکئ سره | اومنع کوی هغوی | دبدئ نه | اوحلالوی |دپاره دهغوی| پاك ځيزونه نيکئ حکم کوی | او بدو کارونونه ئې منع کوی| ....... ..........اوپاکيزه ځيزونه ورته حلالوی

| إِصْرَهُمْ | عَنْهُمْ | وَيَضَعُ | الْخَبَائِثَ | عَلَيْهِمُ | وَيُحَرِّمُ |
|---|---|---|---|---|---|

اوحراموی | په هغوی باندې |ناپاك ځيزونه| اولرې کوی | دهغوی نه | درانه بارونه دهغوی اوپليت ځيزونه پرې حراموی |او ددوی نه (دعبادتونو) درانه بوجونه لرې کوی

(۱) ابوداؤد کتاب الادب باب من ليست له غيبه:۴۸۸۵.
(۲) صحيح مسلم: کتاب التوبه باب فی سعه رحمه الله تعالی وانها تغلب غضبه: ۲۷۵۲، احمد:۴۳۹/۵، ابن حبان:۶۱۴۶، طبران:۶۱۲۶.
(۳) احمد: ۵۵/۳-۵۶ وسنده حسن.
(۴) ابن ماجه کتاب الزهد باب مايرجی من رحمه الله يوم القيامه :۴۲۹۴وهو صحيح، احمد:۵۵/۳،مسند ابی يعلی:۱۰۹۸.
(۵) المعجم الکبير:۳۰۲۲، مجمع الزوائد: ۲۱۶/۱۰.

وَالْاَغْلٰلَ الَّتِیْ كَانَتْ عَلَیْهِمْ ۭ فَالَّذِیْنَ اٰمَنُوْا بِهٖ

اوبندیزونه | هغه | چې وو | په هغوئ | نوهغه کسان | چې ایمان راوړی | په هغه باندې

اوطوقونه ترې پرانیزی کوم چه په دوی باندې وو ..........نو څوک چې دۀ باندې ایمان راوړی

وَعَزَّرُوْهُ وَنَصَرُوْهُ وَاتَّبَعُوا النُّوْرَ الَّذِیْٓ اُنْزِلَ

اوحمایت اوکړی دهغه | اوامداد اوکړی دهغه | اوپیروی اوکړی هغوئ | د نور | هغه | چې نازل کړې شوې دی

اود دۀ (محمد) حمایت او مدد اوکړی | اوپه هغه رڼا (قرآن) پسې روان شی چې هغه سره نازله شوې ده

مَعَهٗٓ ۙ اُولٰٓىِٕكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ۝ ع

دهغه سره | دا کسان چې دی | هم دوئ | خلاصې موندونکی دی |

نو هم دغه کسان کامیاب دی |

قوله تعالیٰ: اَلَّذِیْنَ یَتَّبِعُوْنَ الرَّسُوْلَ النَّبِیَّ الْاُمِّیَّ

**دحضرت محمدﷺ په رسالت باندې ایمان راوړلونه بغیر اخروی خلاصې ممکن نه دې**:- کوم خلق چه د نبی امی تابعداری کوی او مسلمانیږی هغوی ته د دې پیش ګوئیې علم دې کوم چه د هغوی په کتابونو تورات او انجیل کښې د نبی امی متعلق لیکلی دی. د انبیاوؑ په کتابونوکښې د نبی اکرم ﷺ صفت ذکر دې. چا چه خپلو خپلو امتونوته د هغویﷺ د بعثت زیرې ورکړې دې اود هغویﷺ د مذهب اختیارولو هدایت نې کړې دې. د هغوی علماء او راهبان دا څیز پیژنی.

**دمرګ په وخت کښې د یو یهودی ځوان ایمان راوړل**:-په مسند احمد کښې دی چه یو باندچې بیان کړې دې چه دنبی اکرم ﷺ په زمانه کښې دپینو خرڅولو د پاره مدینې ته لاړم. د خرڅون د اوزګاریدونه پس ما وونیل چه څه هغه (محمدﷺ) سره به هم ملاوشو اود هغوی نه به څه خبرې واورم. ما اوکتل چه حضورﷺ حضرت ابوبکرؓ او حضرت عمر ؓ سره روان دې زه هم وریسې شوم. دا دریواړه د یو یهودی کورته اورسیدل چه په تورات باندې پوهیدلو. د هغه ځوی ځوان بنانسته وو او مرګ ته نیزدې وو.هغه سره خواکې کیناستلو تورات نې لوستلو. حضورﷺ دې یهودی سره خبرې کولې اوونې ونیل چه ستا دې د تورات د نازلونکی په ذات باندې قسم وی چه رښتیا اووایه په دې کښې زما ذکر او زما د بعثت خبر هم شته که نه. هغه سر اوخوزولو چه نه، نود هغه یهودی مرګ ته نیزدې ځوان ځوئی اوونیل چه دتورات په نازل کونکی ذات قسم چه مونږ په خپلو کتابونوکښې ستاسوﷺ صفت او د بعثت خبرې ګورواو ګواهی ورکوم چه تاسو ﷺ دالله تعالی رسول یئې.کله چه هغه مړشو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل دې مسلمان دې دا یهودیان د دې ځائې نه اخواکړئی بیا رسول الله ﷺ دهغه د کفن او مونځ انتظام اوکړو[۱] دا حدیث جید او قوی دې او په صحیح بخاری کښې د حضرت انسؓ نه روایت شوې دې.

**هرقل بادشاه ته د اسلام دعوت ورکولو تفصیلی قصه**:: د هشام بن العاص ؓ نه روایت دې چه هرقل د روم بادشاه له د اسلام د تبلیغ د پاره زه او یو بل سړې اولیګلې شو. مونږ لاړو او غوطه او دمشق پورې اورسیدودجبله بن ایهم الغسانی محل ته اورسیدو.هغه صاحب تخت وو. مونږ له نې یو سفیر راولیګلو چه خبره اوکړی چه هغوی څه وانی. مونږ وئیل چه مونږ تاسره خبره نه کوو.مونږ بادشاه سره خبرې کولو له رالیګلې شوې یو.که هغه راوغوښتو نو هغه سره به خبره کوو. زمونږ تاسره هیڅ وینا

---

[۱] احمد:۴۱۱/۵، صحیح مسلم: ۱۳۵۶، ابوداؤد: ۳۰۹۵، احمد:۲۸۰/۳.

نشته. هغه لاړو بادشاه ته ئې خبر ورکړو.هغه راؤغوښتلو او وئې وئيل چه وائې څه خبره ده.هشام بن العاص ﷺ هغه سره خبرې اترې اوکړې او د اسلام دعوت ئې ورکړو. هغه تورې کپړې اغوستې وې نو هشام اووئيل دا تورې کپړې دې ولې اغوستی دی؟ هغه اووئيل چه ما قسم خوړلې چه دا تورې کپړې به هله اوباسم ترکومې چه تاسو خلق د شام نه اونه باسم. مونږ اووئيل چه په الله تعالى قسم مونږ دا تخت تانه اخستونکې یو اود ملك اعظم ملك به هم ان شاء الله زمونږ په قبضه کښې راشی. زمونږ نبی کریم ﷺ د دې زیرې ورکړې دې. هغه وئيل چه تاسو هغه خلق نه ئې.هغه به داسې خلق وی چه د ورځې به روژه ساتی اود شپې مونځونه کوی. تاسو اوښايئې ستاسو روژه څنګه وی. مونږ پوره شان سره بیان کړه نود هغه مخ داسې شو لکه چه توروالې پرې اومږلې شی. هغه اووئيل ښه ده بادشاه سره ملاؤ شئی او مونږ سره ئې یو رهبر کړو. مونږ د هغه په لارخودنې سره لاړو او چه کله مونږ ښار ته نیزدې اورسیدو نو زمونږ رهبر مونږ ته اووئيل چه تاسو د دې سورلو او اوښانوسره په ښارکښې نه شئی داخلیدې که تاسو غواړئی نو مونږ به تاسو له اسونه او قچرې رااوغواړو. مونږ اووئيل چه په الله تعالى قسم مونږ خو به هم په دې سوريږو. هغه بادشاه ته اوليکل چه دا خلق په نورو سورلوباندې د سوريدونه انکاريان دی. بادشاه هم په اوښوباندې د سوريدو اجازت ورکړو. مونږ خپلې تورې زوړند کړې د بادشاه محل ته اورسیدو او خپلې سورلئی موهلته کینولې.بادشاه دخپل محل دبالاخانې نه مونږته کتل. مونږ کوزیدو سره اووئيل ﴿لا اله الا الله والله اكبر﴾ الله تعالى ته پته ده چه زمونږ د تکبیر په آواز باندې ټول محل اولړزیدو لکه چه سیلئی هغه خوزولې وی. بادشاه اووئيل چه تاسو له د خپل دین داسې مظاهره نه وو کول پکار بیائې مونږ راؤغوښتو. مونږ دربارته داخل شو او هغه په خپل د ناستې په ځائی باندې ناست وو. پوپ پادری اودسلطنت مشران هغه سره چاپیره ناست وو.دهغه د مجلس هرڅیز سور وو. ټول ماحول سور، د هغه کپړې هم سرې مونږ هغه ته نیزدې شو نو هغه اوخندل او وئې وئيل چه تاسو په خپل مینځ کښې څنګه سلام کوئې نو ماته مو هغه شان ولې اونه کړو؟ هغه سره یو فصیح الکلام عربی پیژندونکې ترجمان موجود وو. مونږ د هغه په ذریعه دا اووئيل چه مونږ په خپل مینځ کښې کوم سلام وایو هغه ستاد پاره سزا وار دې او ثاته چه کومه طریقه باندې ادب او سلام دې هغه زمونږ د پاره سزا وارنه دې چه د تعظیم اوسلام او کلام هغه طریقه مونږ ستا دپاره اوکړو.هغه اووئيل چه ستاسو خپل مینځ کښې سلام څنګه وی؟ مونږ وئيل﴿السلام علیك﴾ هغه تپوس اوکړو تاسو خپل بادشاه ته څنګه سلام کوئې؟ مونږ وئيل هغه ته هم داسې. هغه تپوس اوکړو چه هغه څنګه جواب درکوی مونږ وئيل چه هغه هم دغه الفاظ وئيلو سره جواب راکوی. هغه تپوس اوکړو چه ستاسو امتیازی نعره کومه ده. مونږ وئيل ﴿لااله الاالله والله اكبر﴾ کله چه مونږ په اوچت آواز سره دا اووئيل نو ټول محل اولړزیدو. تردې چه هغه اوویریدلو او سر ئې اوچت کړو چه چت خو نه راپریوزی. هغه اووئيل چه تاسو خو دا کلمه اوونیله چه دې سره خو دا مکان اوخوزیدو.کله چه تاسو په خپل کورکښې وائې نو ستاسو کورونه هم خوریږی؟ مونږ وئيل چه نه. مونږ بغیر ستاد محل نه داسې کله هم نه دی لیدلی. هغه اووئيل چه خومره به ښه وه چه کله تاسو دانعره لګوله او ستاسو هر څیز لړزیدلو اود دې نعرې په وهلو سره زما نیم ملك ماتې خوړلو او نیم پاتې کیدلو. مونږ تپوس اوکړو داسې ولې؟ هغه اووئيل چه دا آسان دی د دې خبرې نه چه امرنبوت قائم شی.بیائې زمونږنه د راتلو د مقصد تپوس اوکړو. مونږ خپل مقصدتبلیغ اوخودلو.تپوس ئې اوکړوستاسو مونځ روژه څنګه وی؟ مونږورته اوخودل. هغه مونږ اوس رخصت کړو.مونږ ئې په مهمان خانه کښې حصارکړو اوزمونږ میلمستیا ئې اوکړه.مونږ هلته درې ورځې حصار شو

**د هرقتل ترجمان صحابه کراموﷺ ته مختلف تصویرونه اوخودل:** بیائې مونږ یوه شپه راؤغوښتو. مونږ لاړو بیائې زمونږنه تپوس اوکړوبیا مونږ خپل مقصد سردوباره کړو.اوس هغه یو ډیرلوئ څیز دسرو

سپينونه پينلې شوي راڅرګندېږي. په هغې کښې ورې ورې خانې جوړې شوې وې او په هغې کښې دروازې وې. هغه د يودبې تاله کولا ؤکړه اود هغې نه نې يوه توره ريښمی کپړه راؤويستله او په هغې کښې يوسور تصويرجوړشوې وو. يودسرې تصوير وو چه دهغه لوئ لوئ سترګې وې.پير پټونونه اوږده او ګنړه ږيره، د سر وينېته په دوو حصوکښې ډير ښائسته او اوږده اوږده وو. ونيل آيا دا پيژنئ. مونږ ونيل نه. هغه ونيل دا آدم ﷺ دې د هغه په بدن باندې ډير وينېته وو. بيانې د يو بل ډبی تاله کولاؤ کړه د هغې نه نې هم.يوه توره ريښمی کپړه راواويسه. په هغې کښې د يو سپين رنګ د سړی تصوير جوړشوې وو. ګورګوټې وينېته،سرې سترګې لوئی سر ښائسته ږيره ونيل دا نوحﷺ دې. بيانې ديوبل ډبی نه بل تصوير راوويستلو.ډير زيات سپين رنګ نې وو، ښائسته غونډې سترګې کولاؤ تندې اود سپين رنګ تصوير وو. سپينه ږيره نې وه، خندنې صورت نې وو، ونيل پيژنئی.داڅوک دې؟ دا ابراهيمﷺ دې. بيانې يوه بله ډبه کولاؤکړه يو روښانه اود سپين رنګ تصوير وو او هغه د محمد ﷺ وو تپوس نې اوکړو دا پيژنئی مونږ ونيل او دا محمد ﷺ دې. د تصوير په ليدو په مونږ باندې ژړېدل شروع شو. هغه ونيل الله تعالی ته معلومه ده چه هم دا محمد ﷺ دې. بيا هغه اودريدو بيا کيناستو او وئی ونيل چه د الله تعالی قسم دا هم هغه دې؟ مونږ ونيل چه اوهم هغه دې. ددې تصوير په کتو سره نه هم دا اوګنړه چه هم حضورﷺ دې کتلې دې. بيا نې څه وخت پورې دې تصوير ته کتل بيانې اوونيل دا آخرې ډبه وه خو مادا د ټولونه په آخره کښې د خودلو په ځای نورې ډبې پريخودې او په مينځ کښې مې دا اوخودلو چه ستاسو د صداقت امتحان اوکړم. بيانې يو بل تصوير چه غنم رنګې اونرم صوت وو، ګورګوټې وينېته، ډوبې سترګې،تيز نظر، د غصې نه ډک مخ، اينختې غابنونه، پيړې شونډې ونيل دا د موسی ﷺ تصوير دې. دې سره نزدې يو بل تصوير وو چه په شکل او صورت کښې د دې په شان وو خودا چه په وينېتوکښې تيل لګولې ګمنزه شوې، کولاؤ تندې سترګې غټې ونيل دا هارون بن عمران دې. بيا د يو بل ډبی نه بل تصوير راښکاره کړو غنم رنګې، برابر قامت، د نيغو وينېتووالا.د مخ نه نې غم غصه ښکاره وه، دا لوط ﷺ دې.بيا نې يو د سپين رنګ ريښمی کپړه کولاؤکړه يوپړقيدونکی رنګ والا سړې د کوم قد چه اوږد نه وو واړه شان اننګی وو ښائسته مخ نې وو ونيل دا حضرت اسحاق ﷺ دې. بيا نې يوه بله دروازه کولاؤ کړه دهغې نه نې سپينه ريښمی کپړه راوويتسه مونږ ته نې اوخودله دهغه شکل دحضرت اسحاق ﷺ سره ډير يوشان وو خود هغه په شونډه باندې توردا غ وو ونيل دا يعقوب ﷺ دې. بيانې په يوه توره کپړه کښې تصوير اوخودلو. سپين رنګ ډير ښائسته مخ په مخ باندې د نوراخلاص او خشوع آثار ښکاره وو، رنګ نې سوربخن ،ونيل دا اسماعيلﷺ دې. بيا نې ديو ډبی نه سپينه کپړه بهر کړه په کومه کښې چه د آدم ﷺ د تصوير په شان وو په مخ باندې نمر پړقيدلو ونيل دا يوسف ﷺ دې. بيا نې يوبل تصوير راوويستلو سور رنګ، ډکې پنډنی غټې سترګې لويه خيټه وړوکې قد توره آويزان، ونيل دا داؤد ﷺ دې. بيانې يو بل تصوير راوويستلو پير پټونونه، اوږدې پښې، په آس سور ونيل دا سليمان ﷺ دې. بيا نې يو بل تصوير راوويسلو خوان توره ږيره ګنړ وينېته، ښائسته سترګې ښائسته مخ ونيل دا عيسی بن مريم ﷺ دې. مونږ اوونيل چه دا تصويرونه تاته د چرته نه ملاؤشوی مونږ ته معلومه ده چه دا تصويرونه خامخا د انبياء عليهم السلام به وی. څکه چه مونږ د خپل نبی ﷺ تصوير هم صحيح اومنلو. بيا نې اوونيل آدم ﷺ د الله تعالی نه سوال کړې وو چه زما انبياء اولاد ماته اوښايه نو الله تعالی د دې انبياء کرامو تصويرونه حضرت آدم ﷺ ته ورکړل هغه حضرت آدم ﷺ په مغربی ملك کښې په حفاظت سره ساتلې وو. ذوالقرنين هغه راوويستل او دانيال ﷺ ته نې حواله کړل. بيا نې ونيل چه زه خو غوارم چه خپل ملك پريږدم او تاسو کښې د يو کمزوری غلام شم او تردې چه ماته مرګ راشی.

اوس نې مونږ رخصت کړو انعام اواکرام نې راکړو دتلو انتظامات نې اوکړل. کله چه مونږ حضرت

ابوبكر صديق ﷺ له راغلوهغوی ته مو دا واقعه بيان كړه نو د هغه په سترګو كښې اوښكې راغلې او وئی وئیل كه الله تعالی هغه ته توفيق وركړو نو هغه به خامخا داسې كوى. بيا ئې اوفرمائيل چه حضور ﷺ مونږ ته خبر راكړې چه يهوديان په خپل كتاب كښې د نبی كريم ﷺ صفات بيامومی. (١)
عطاء بن يسار رحمه الله وائي چه عبدالله بن عمرو ﷺ سره ما ملاقات اوكړو اوپه تورات كښې مې د حضور ﷺ متعلق د پيشن ګوئي باره كښې ترينه تپوس اوكړو نو وئی وئيل چه اوپه الله تعالى قسم په تورات كښې دحضور ﷺ هم داسې ذكر دې لكه څنګه چه په قرآن كښې دې چه اې نبي مونږ ته د امت ګواه جوړكړې اود جنت زيرې وركونكې او د دوزخ نه ويرونكې او د عوامو خيال ساتونكې جوړ كړې. (٢) ته زما بنده او رسول يئې او ستا نوم متوكل دې. ته نه سختې كونكې يئې او نه سخت زړه يئې. تا به ترهغه وخته پورې الله تعالى نه راغواړى تركومې چه په غلطه لار تلونكې قوم ته په سيده لار نه كړې. او تركومې چه هغوی ايمان رانوړې اود هغوی د زړونونه پردې اوچتې نه شي او سترګې ليدل اوغوږونه اوريدل اونه كړى. بيا د عطاء رحمه الله ملاقات حضرت كعب رحمه الله سره اوشو نو هم دغه سوال ئې د هغه نه هم اوكړو نو په بيان كښې ئې د يو حرف اختلاف هم بيانه موندلوصرف دې نه علاوه چه په خپله ژبه كښې (غلفا) ئې (غلوفيا) او (صما) ته (صموميا) او (عميا) ته (عوميا) وئيل (٣) او دا جملې ئې زياتې كړې چه هغوى به په بازار كښې شور شغب نه كوى. هغه د بدئ بدله په بدئ سره نه وركوى معافی كوى. اود عبدالله ابن عمر ﷺ د حديث ذكر ئې اوكړو بيانې اوونيل چه د سلف په كلام كښې د لفظ توراة اطلاق عمومًا د اهل كتابو په كتابونوكيږى او د احاديثو په كتابونوكښې هم څه داسې وارد دى.والله اعلم.

**بله قصه:** :د جبير بن مطعم ﷺ نه روايت دې چه زه د تجارت په غرض د شام طرف لاړم. چه كله زه د شام ملك ته نيزدې شوم نو اهل كتابونه مى يو سړى سره ملاقات اوشو. هغه تپوس اوكړو چه آيا ستاسو ملك ته څوك سړې نبى راغلى دې؟ ما وئيل چه او. هغه وئيل چه آيا ته د هغه تصوير پيژنې ما وئيل چه او. نو هغه زه يو كور ته بوتلم كوم كښې چه تصويرونه وو خو ما د نبى كريم ﷺ يو تصوير هم اونه ليدو. مونږ په دې خبرو اتروكښې وو چه يوبل سړې راغلو هغه وئيل څه خبره ده؟ مونږ خبر وركړو نو هغه مونږ خپل كور ته بوتلو. په كوركښې داخليدو سره ما د نبى كريم ﷺ تصوير اوليدلو او دا هم چه په تصويركښې يوسړې د نبى كريم ﷺ شاته ولاړ دې. ما وئيل چه دا څوك دې چه د حضور ﷺ نه شاته ولاړ دې هغه ئې نيولې دې؟ هغه وئيل چه دا نبى خو نه دې خو كه د نبى نه روستو نبى وې نو هم دې به وو. د ده نه پس به بل نبى نه راځى خو دې به د نبى جانشين وى. (٤)

**ديو پادرى قصه:** :اقرع دحضرت عمر ﷺ موذن وائى چه حضرت عمر ﷺ زه يو پادرى راوستلو د پاره اوليګلم.ما راوغوښتلو.دهغه نه حضرت عمر ﷺ تپوس اوكړو چه آيا په كتاب كښې ته زما ذكر هم بيامومې؟ هغه اوونيل چه او په كتاب كښې تاته قرن وئيلې شوې دې. هغه خپله دره راوچته كړه چه قرن څه خبره ده؟ هغه اوونيل دې نه مراد دې كلك سړې سخت امير. بيا حضرت عمر ﷺ تپوس اوكړو بنه ده مانډ پس؟هغه اوونيل ستا جانشين به يو صالح سړې وى خو هغه به خپلوانو ته ډيره ترجيح وركوى نو حضرت عمر ﷺ اوفرمائيل چه الله تعالى دې په حضرت عثمان ﷺ باندې رحم اوكړى. درې خل ئې اوونيل بيا ئې اوفرمائيل دې نه پس به څوك وى؟ هغه اوونيل د اوسپنې د پارې په شان يو

(١) دلائل النبوة: ١/٣٨٥، ٣٩٠.
(٢) ٣٣/الاحزاب: ٤٥.
(٣) صحيح بخارى كتاب البيوع باب كراهيه السخب فى السوق: ٢١٢٥، ٤٨٣٨.
(٤) المعجم الكبير: ١٥٣٧، المعجم الاوسط: ٨٢٢٧.

سړي. حضرت عمر ﷺ پوهه شو چه حضرت علي ﷺ مراد دي. هغه خپل سر اونیولو او افسوس ئې اوکړو هغه ونیل یا امیرالمؤمنین هغه به صالح خلیفه وی خو هغه به په هغه وخت کښې خلیفه وی چه توره به نی د تیکې نه راویستلې وی او وینه به ترې بهیږی ( )

**د نبی نبوی ذمه داریانې او دده صفتونه::** د الله تعالی ارشاد دې چه نبی د نیکو خبرو حکم ورکوی او د بدو خبرو نه منع کوی. دا د رسول الله ﷺ صفت دې چه په تیریوشوو کتابونوکښې درج دې اوواقعی د حضورﷺ هم دغه حال وو چه د خیر نه علاوه به نی بل هیڅ نه ونیل اود هغه خبرې نه به نی منع کوله کومه چه به د شر وه. د عبدالله بن مسعود ﷺ نه روایت دې چه کله تاسو په قرآن کښې اولولئ ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ﴾ نو غوږ کیږدئی کیدې شي چه څه د خیر حکم ورکونکې وی یا د څه شر نه منع کونکې وی اود ټولو نه اهم څیز د کوم چه الله تعالی حکم ورکړې دې دا چه د الله تعالی سره د څه شریك نه بغیر هغه عبادت کوئې څوك د هغه شریك مه جوړوئی. ټول انبیاء کرام هم د دې مقصد لاندې رالیګلې شوې وو. لکه څنګه چه د الله تعالی ارشاد دې چه مونږ په هر قوم کښې خپل پیغمبر لیګلې دې چه عبادت صرف هم د الله تعالی کوئې اود بتانو عبادت نه منع شئی.( )

**دصحیح حدیث پاک پیژندګلو::** د ابی اسید ﷺ نه روایت دې چه حضور ﷺ فرمائیلی چه کله تاسو ته روایت شوې یو حدیث واورئی کوم چه ستاسو زړه اومنی ستاسو ویښتان او څرمن په دې سره نرم شی او تاسو دا خبره محسوس کړئی چه دا خبره ستاسو ذهنیت سره نیزدې ده نو یقیناً ستاسو په نسبت به زما ذهنیت دې سره نیزدې وی یعنی هغه زما حدیث کیدې شی اوکه پخپله ستاسو زړه د دې نه انکار اوکړی او هغه خبره ستاسو د ذهنیت نه لرې وی نو پوهه شئی چه ستاسو په نسبت زما ذهنیت نه به نوره هم لرې وی او هغه به زما حدیث نه وی. ( ) د حضرت علي ﷺ نه روایت دې چه کله ته د رسول الله ﷺ یو حدیث واورې نود هغې باره کښې هغه ګمان کوه چه صحیح ګمان وی او کوم چه ډیر مبارك وی او ډیر پاکیزه وی. ( ) د الله تعالی ارشاد دې چه هغه ستاسو د پاره طیبات حلال کړی دی. لکه بحیره، سائبه، وصیله او حام دا حلال وو خو په زبردستئی سره نی حرام کړی وو. د دې سره نی په خپل ذات باندې نوره هم تنګی کړې ده او خبائث الله تعالی حرام کړی دی لکه د خنزیر غوښه او سود. د خوراك چه کوم څیزونه الله تعالی حرام کړی وو هغه نی حلال جوړ کړل. الله تعالی هر هغه څیز چه کوم حلال کړې دې د هغې خوراك بدن ته نفع ورکوی اود دین امدادی کیږی. اوکوم چه الله تعالی حرام کړی دی هغه د بدن او دین دواړو د پاره مضر دی. هغه خلق چه عقلی توګه باندې ښه والی او خراب والی باندې پوهیږی هغوی هم د دې آیت نه تمسك کوی. د دې تخیل جواب هم ورکړې شوې دې خو دلته د دې ټولو تفصیلونو محل نه دې اوهم د دې آیت نه نی حجت قائم کړې دې هغه علماؤ چه څوك دا وائی که د یو څیز د حلال والی او حرام والی حدیث نه وی نود حلال او حرام د تللو دا معیار کیدې شی چه دا افادیت په لحاظ عرب کوم څیز مفید او طیب ګڼړی اوکوم خبیث او مضر ګڼړی. په دې تخیل کښې هم ډیر بحث شوې دې. د الله تعالی ارشاد دې چه هغه بوج کوم چه د خلقو په زړونوکښې وو رسول الله ﷺ هغه سپکوی اود رواج په کومو زنځیرونوکښې چه هغوی راګیر وو رسولﷺ هغه اخوا کوی. هغه آسانی ښښه او معافی راوړلې ده لکه چه حدیث دې چه ما آسان او د ګډوډوالی نه پاك دین راوړلې رالیګلې

---

( ) ابوداؤد کتاب السنه باب فی الخلفاء: ۴۶۵۶ وسنده صحیح، مجمع الزوائد: ۱/۱۴۹

( ) ۱۶/النحل: ۳۶

( ) احمد: ۵/۴۲۵ وسنده صحیح، مجمع الزوائد: ۱/۱۴۹.

( ) احمد: ۱/۱۲۲، سنن ابن ماجه: المرقومه، باب تعظیم حدیث رسول الله ﷺ: ۲۰، وسنده صحیح ، دارمی: ۵۹۲ د دې سند د بخاری اومسلم په شرط صحیح دې. (الموسوعه الحدیثیه: ۲/۲۸۳).

شوې یم.(۱)
دملک سفیربه خنده رویه اوخوش اخلاقه وی::نبی کریمﷺ چه کله حضرت معاذؓ او ابوموسی اشعری ؓ د یمن امیران جوړکړې اولیګل نو هدایت ئې ورته اوکړو چه ښه مزاج او خنده رویه مخ اوسیږئ چه خلق تاسو نه ویره نه کوی اود هغوی د پاره آسانتی پیدا کړئ سختی مه کوئ چه په خلقو کښې د منلو عادت وی د اختلاف ذهنیت ئې نه وی. (۲)د حضور ﷺ صحابی ابو برزه اسلمی ؓ فرمائی چه زه رسول الله ﷺ سره پاتې وم اود هغوی ﷺ آسانتی ورکولو مې ښه مشاهده کړې ده(۳) په وړاندینو امتونوکښې ډیرې سختنی وې په دې امت هغه احکام نرم کړې شوی دی. د دې د پاره حضورﷺ اوفرمائیل چه الله تعالی زما د امت د زړه په خیالونو اوارادو باندې نیول نه کوی ترکومې چه هغوی په ژبه باندې څه اونه وائی یا څه عمل اونه کړی. (۴) فرمائی زما د امت نه خطا او هیره معاف کړې شوې ده که په هیره وغیره سره ئې څه کړی وی یا د جبر حالت کښې کړی وی نو دا د معافئی قابل ګنړلې شوې دی.(۵) په دې وجه الله تعالی د دې دعا د غوښتلو هدایت کړې دی. ﴿ اکْتَسَبَتْ رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَآ اِنْ نَّسِيْنَآ اَوْ اَخْطَاْنَا ۚ رَبَّنَا وَلَا تَحْمِلْ عَلَيْنَآ اِصْرًا كَمَا حَمَلْتَهٗ عَلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِنَا ۚ رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلْنَا مَا لَا طَاقَةَ لَنَا بِهٖ ۚ وَاعْفُ عَنَّا ۗ وَاغْفِرْ لَنَا ۗ وَارْحَمْنَا ۗ اَنْتَ مَوْلٰىنَا فَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ﴾
د صحیح مسلم نه ثابت دی چه د دې دعا په ذریعه د الله تعالی نه غوښتلې شی نو په هرسوال باندې الله تعالی فرمائی ښه ده ما درکړو اوما قبول کړو. (۶) د الله تعالی ارشاد دې چه کوم خلق د حضور ﷺ عظمت کوی د هغوی ﷺ د راوړلې شوی دین پیروی کوی هم دغه خلق په دنیا اوآخرت کښې خلاصې موندونکی دی.

| قُلْ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اِنِّيْ | | |
|---|---|---|
| اووایه | اې خلقو | بیشکه زه |
| چې اې خلقو بیشکه زه | | |

| رَسُوْلُ اللّٰهِ | اِلَيْكُمْ | جَمِيْعًا | اِلَّذِيْ | لَهٗ | مُلْكُ | السَّمٰوٰتِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| رالیږلې شوې(پیغمبر)د الله یم | تاسو | تولوته | هغه الله | چې هغه دپاره ده | بادشاهي | دآسمانونو |
| دالله ﷺ رسول یم | چې تاسو ټولو ته راغلی یم | ...........هغه الله ﷻ چې دآسمانونو او | | | | |

| وَالْاَرْضِ | لَآ اِلٰهَ | اِلَّا | هُوَ | يُحْيٖ | وَيُمِيْتُ |
|---|---|---|---|---|---|
| اود زمکې | نشته دې لائق دعبادت | مګر | خاص هم هغه دی | چې ژوندی کول کوي | اومړهٔ کول کوي |
| زمکې مالک دې | هغه نه بغیربل څوک دعبادت لایق نشته | هغه ذات ژوندی کول اومړهٔ کول کوي | | | |

---

(۱) دَ دې تخریج سورة البقرة آیت:۱۸۵ لاندې تیرشوې دې.
(۲) صحیح بخاری کتاب الادب باب قول النبیﷺ(یسروا ولاتعسروا):۶۱۲۴، صحیح مسلم:۱۷۳۴، احمد:۱۳۱/۳، مسندابی یعلی:۴۱۷۲
(۳) صحیح بخاری کتاب العمل فی الصلوه باب اذاانفلتت الدابه فی الصلاه: ۱۲۱۱.
(۴) صحیح بخاری کتاب العتق باب الخطاء والنسیان فی العتاقه والطلاق ونحوه....:۲۵۲۸، صحیح مسلم:۱۲۷، ترمذی:۱۱۸۳، احمد:۲۵۵/۲، ابن ماجه:۲۰۴۴، ابن حبان: ۴۳۳۴.
(۵) ابن ماجه کتاب الطلاق باب طلاق المکره والناسی:۲۰۴۵وهوصحیح، بیهقی:۳۵۶/۷
(۶) صحیح مسلم کتاب الایمان باب تجاوزالله تعالی من حدیث النفس والخواطر بالقلب...۱۲۶ ترمذی: ۲۹۹۲، احمد:۲۳۳/۱، ابن حبان:۵۰۶۹.

| يُؤْمِنُ | الَّذِي | الْأُمِّيِّ | النَّبِيِّ | وَرَسُولِهِ | بِاللَّهِ | فَآمِنُوا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| پس ایمان راوړئ | په الله باندې | اوپه رسول دهغه | چې نبي دې | امي دې | هغه رسول | چې ایمان راوړي |

نو تاسو ټول په الله ﷻ باندې ایمان راوړئ | او دهغه په امي رسول باندې ایمان راوړئ | هغه پیغمبر چې په

| تَهْتَدُونَ ﴿١٥٨﴾ | لَعَلَّكُمْ | وَاتَّبِعُوهُ | وَكَلِمَاتِهِ | بِاللَّهِ |
|---|---|---|---|---|
| په الله باندې | اوپه حکمونو دهغه باندې | او پیروي اوکړئ دهغه | د پاره ددې چې تاسو انیغه لار بیامومئ | |

الله او په ټولو کلماتو (نورو کتابونو) ېې ایمان راوړې دې | او دهغه تابعداری اوکړئ | نو هدایت به بیامومئ

قوله تعالى: قُلْ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنِّي رَسُولُ اللَّهِ إِلَيْكُمْ جَمِيعًا

**د حضورﷺ عالم ګیر نبوت**.- اې نبیﷺ! عرب او عجم او د دنیا جهان خلقو ته اووایه چه زه د ټولو طرف ته رسول جوړکړې شوې راغلې یم. دا د حضورﷺ د شرف او عظمت دلیل دې چه پیغمبری په هغویﷺ باندې ختمه شوه او هغه د قیامته پورې د ټولې دنیا پیغمبر دې. او ورته اووایه چه زما او ستاسو په مینځ کښې الله تعالی ګواه دې. تاسو له خبرداري درکولو د پاره ما ته الله تعالی وحی راولیګله.(۱) د الله تعالی ارشاد دې چه کوم قوم نبي اونه مني د هغوی ځائ دوزخ دې(۲) اوفرمائي چه اهل کتابو او غیر اهل کتابو ټولوته اووایه چه اسلام راوړئ که نه؟ که هغوی اسلام راوړلو نو هدایت به بیامومي ګنی ستا کار خو صرف تبلیغ کول دی.(۳) د دې مضمون احادیث هم دومره زیات احادیث دی چه شمیرل ئې ګران دی. اود دین اسلام دا خبره خو ټولو ته معلومه ده چه حضور ﷺ ټولې دنیا ته رسول رالیګلې شوې دې.

**د ابوبکر صدیق ﷺ فضیلت**::ابوالدرداء ﷺ فرمائي چه د حضرت ابوبکرﷺ او حضرت عمر ﷺ په مینځ کښې څه تیزې خبرې اوشوې. ابوبکرﷺ حضرت عمر ﷺ خفه کړو. عمرﷺ خفه واپس لاړو. ابوبکر ﷺ نه احساس اوشو نو هغه حضرت عمر ﷺ پسې د معافئ د پاره لاړو خو عمر ﷺ کورته پرینخودو دروازه ئې بند کړه. اوس ابوبکر ﷺ رسول الله ﷺ له لاړو. ابودرداء ﷺ وائي چه مونږ هم هغه وخت ناست وو حضورﷺ اوفرمائیل چه ستاسو دې ملګری لره حضرت عمرﷺ غصه کړې دې خو بیا حضرت عمرﷺ ته هم د صدیق اکبرﷺ کورته په نه پریخودو باندې پښیمانتیا اوشوه. هغه هم حضور ﷺ له راغلو سلام ئې اوکړو کیناستو او واقعه ئې حضور ﷺ ته بیان کړه. حضور ﷺ حضرت عمر ﷺ ته غصه شو او حضرت ابوبکرﷺ د دې وینا کولو نه هم پاتې شو چه یا رسول اللهﷺ! زیاتې زما د طرف نه وو خو حضورﷺ اوفرمائیل چه آیا تاسو خلق زما ملګرې او دوست پریخودل غواړئ. ما تاسو ته وئیلې وو چه زه ستاسو طرف ته رسول جوړکړې رالیګلې شوې یم. تاسو خو وئیل چه دروغ وائې او حضرت ابوبکر ﷺ تصدیق کړې وو.(۴)

**د رسول کریم ﷺ خصوصیات**::رسول الله ﷺ په غزوه تبوک کښې د شپې د مانځه د پاره پاسیدو نو د حضورﷺ بعضې صحابه کرامو د حضورﷺ حفاظت او نګرانی کوله. د مونځ کولو نه پس حضورﷺ د هغوی طرف ته متوجه شو او وئې فرمائیل چه په نن شپه کښې پنځه څیزونه ماته په خصوصیت سره راکړې شو زما نه وړاندې دا خاص رعایتونه بل پیغمبر ته نه وو ورکړې شوی.(۱) دا چه زه د ټولې

(۱) ۶/الانعام: ۱۹.
(۲) ۱۱/هود:۱۷.
(۳) ۳/آل عمران: ۲۰.
(۴) صحیح بخاری کتاب التفسیر سوره الاعراف باب ﴿قل یاایهاالناس انی رسول الله الیکم جمیعًا...﴾: ۴۶۴۰.

دنیا جهان د خلقو د پاره پیغمبر جوړکړې شوې راليګلې يم اودې نه وړاندې به هر يو رسول صرف د خپل امت طرف ته راتللو(۲) ماته صرف په رعب باندې په دښمن باندې نصرت او امداد حاصليږي سره د دې چه زمونږ اود هغوی په مينځ کښې د يوې مياشتې د مسافت لرې والې وی خو په هغوی باندې زما رعب خور وی(۳)د غنيمت مال زما او زما دامت د پاره حلال کړې شوې دې. زما نه وړاندې د غنيمت مال خوړل ګناه کبيره وه هغه به سوزولې شو(۴) ټوله زمکه زما د پاره پاکه ده او جمات دې. چرته چه د مانځه وخت راغلو هم هغه خاورې سره مسح اوکړه او هم په هغه خاوره باندې مونځ اوکړه. ماته وړاندې به خلقو به خپلو ګرجو کليسو او مندرونوکښې خپل عبادتونه کول. (۵) پنځم څيز دا چه ماته اووئيلې شو چه د يو درخواست اجازت دې اوغواړه. هر نبی اوغوښتل خو ما خپل سوال قيامت ته پريخودو هغه ستاسو دپاره دې او په توحيد باندې قائلو خلقو د پاره دې([1]) ددې سند ډير قوی او جيد دې.رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه زما د امت نه يو يهودی يا نصرانی زما د راتلو خبر واوريدو خو په ما نی ايمان رانوړلو نو جنت ته نه شی تللې([2])دا حديث په صحيح مسلم کښې په يو بل شان هم دې ([3]) خود ټولو مفهوم هم يو شان دې.

د الله تعالى ارشاد مبارك دې چه د زمکې او آسمان بادشاهت هم د هغه د پاره دې او هم هغه ژوندی کول او مړه کول کوی. حضور ﷺ اوفرمائيل چه کوم ذات زه راوليګلم هغه د هر څيز خالق دې. رب دې مالك دې مړه کول او ژوندی کول هم د هغه په قدرت کښې دی. حکم کيږی چه په الله تعالى باندې اود هغه په نبی باندې ايمان راوړنی. الله تعالى خبر ورکوی چه هغه د الله تعالى رسول دې ستاسو طرف ته راليګلې شوې دې تاسو دهغه تابعداری اوکړنی په هغه باندې ايمان راوړئی هم د دې تاسو سره وعده کړې شوې وه. په تيروشوو کتابونوکښې هم د دوی زيرې وو او په وړاندينوکتابونوکښې هم د نبی امی په الفاظو سره د حضور ﷺ تعريف شوې دې. بيا ارشاد دې چه څوك په ده اود ده په کلماتو باندې ايمان راوړی اود هغه تابعداری اوکړی نو د نيغې لارې طرف ته به هدايت بياموی.

| وَمِنْ قَوْمِ مُوسَىٰ | أُمَّةٌ | يَهْدُونَ | بِالْحَقِّ | وَبِهِ |
|---|---|---|---|---|
| او د قوم د موسى نه | يوه ډله ده | چې لاره ښانی خلقوته | په حقه سره | اوهم په دې حق |
| اوموسى ﷺ قوم کښې داسې يوه ډله هم شته | | چې دحقې لارې خودنه کوی | | او د اوهم په دې حق |
| يَعْدِلُونَ۝ | | | | |
| انصاف کوی هغوی | | | | |

**قوله تعالى: وَمِنْ قَوْمِ مُوسَىٰ أُمَّةٌ**

**په بنیاسرائيلو کښې يوه اله په حق وه.**- خبرورکولې شی چه په بنی اسرائيلوکښې داسې خلق هم شته چه د حق خبرې منل کوی د حق رهبری کوی اوعدل او انصاف حق په وړاندې کېخودو سره کوی. لکه چه فرمانی په اهل کتابوکښې هم يوه ډله ده چه د شپې په حصوکښې د الله تعالى د آياتونو تلاوت کوی او مونځونه کوی. اوفرمائی چه بعضې اهل کتاب په الله تعالى باندې ايمان لری. په تا باندې او په هغوی باندې چه څه نازل شوی دی هغه ټول منی. د الله تعالى په وړاندې عاجزی کوی. د نورواهل کتابو په شان دالله تعالى آياتونه په پيسو باندې نه خرڅوی.دالله تعالى په نيزبه هغوی ته ډيرلوئ اجر

[1]) احمد:۱/۳۰۱، مسندالبزاز:۳۴۶۰،وفی الباب احاديث اخری مغنيه عنه، مجمع الزوائد:۶۵۸/۸.
[2]) احمد:۳۹۸/۴ السنن الکبری للنسائی:۱۱۲۴۱، مسندالطيالسی:۵۰۹، حليه الاولياء:۳۰۸/۴ وسنده صحيح .
[3]) صحيح مسلم کتاب الايمان باب وجوب الايمان برسالة نبينا محمدﷺ الی جميع الناس ونسخ الملل بملته: ۱۵۳.

ملاویږي. الله تعالی ډیر زر حساب اخستونکې دی. کومو خلقو ته چه دې نه وړاندې مونږ کتاب ورکړې وو هغوی په دې باندې ایمان راوړی او چه کله په هغوی باندې زمونږ آیاتونه تلاوت کولې شی نو وائي چه مونږ په دې ایمان راوړلې دې دا حق کلام دې مونږ اوس هم مسلمانان یودې نه اول هم مسلمانان وو. دوی ته به د دوی د صبر دوه خل اجر ورکولې شي او فرمائي چه چاته کتاب ورکړې شوې دې اود دې د تلاوت حق ادا کوی هم دغه مؤمنان دی. اوفرمائي چه هغه خلق کومو ته چه دې نه وړاندې علم ورکړې شوې وو یعنی کتاب او چه دا کتاب به هغوی ته لوستلې اوروړلې شو نو سر لاندې به په سجده کښې پریوتل او په سجده کښې به د هغوی خشوع او خضوع ډیره زیاتیدله. علامه ابن جریر په خپل تفسیر کښې یو عجیبه خبر نقل کړې دې چې بنی اسرائیلو چه کله خپل انبیاء قتل کړل او کفر ئې اختیار کړو نو هغه دولس ډلې وو. په هغوی کښې یوه ډله د باقي یولسو د عقیدونه ویزاره وه. هغوی الله تعالی ته درخواست اوکړو چه اې الله تعالی! په مونږ کښې اوپه هغوی کښې جدائی اوکړې. نو الله تعالی د هغوی د پاره په زمکه کښې یو سرنګ پیدا کړو هغوی په دې کښې روان شو اوتردې چه هم په دې لار د چین ملك ته اوتل. هلته زمونږ موحد مسلمانان وو چه هم زمونږ د قبلې طرف ته به ئې مخ کولو او مونځ به ئې کولو. بیا ارشاد کیږی چه مونږ د دې نه پس بنی اسرائیلوته اووئیل چه اوس په زمکه اوسیږئی اوچه کله د آخرت وعده راشي نو مونږ به تاسو حاضر کړو. وائي چه په سرنګ کښې یونیم کال پورې روان وو.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَقَطَّعۡنٰهُمُ | اثۡنَتَیۡ عَشۡرَةَ | اَسۡبَاطًا | اُمَمًا ؕ |
| او بیل بیل کړل مونږه هغوئ | دولس | قبیلې | ډلې ډلې |

| او مونږ دوئ دولسو خاندانو کښې جداجدا ډلې جوړې کړې وې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَاَوۡحَیۡنَاۤ | اِلٰی مُوۡسٰۤی | اِذِ اسۡتَسۡقٰهُ | قَوۡمُهٗۤ | اَنِ اضۡرِبۡ |
| اووحی اوکړه مونږه | موسی ته | اکله چې اوبه اوغوښتلې دهغه نه | قوم دهغه | چې اووهه |

اوکوم وخت چې ئې دموسی ﷺ نه اوبه اوغوښتلې | نو مونږ موسی ﷺ ته وحی اوکړه | چې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بِّعَصَاكَ | الۡحَجَرَ ۚ | فَانۡۢبَجَسَتۡ | مِنۡهُ | اثۡنَتَا عَشۡرَةَ | عَیۡنًا ؕ |
| په همساخپله | دا کانړې | نو روانې شوې | دهغه کانړي نه | دولس | چینې |

کانړې په خپله همسا باندې اووهه | نو دهغې نه دولس چینې روانې شوې ........

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَدۡ | عَلِمَ | كُلُّ اُنَاسٍ | مَّشۡرَبَهُمۡ ؕ | وَظَلَّلۡنَا | عَلَیۡهِمُ |
| په تحقیق سره | اپیژندلوا | هرې ډلې | اخانې داوبوڅښلوخپل | او سیورې کړه مونږه | په هغوئ باندې |

هرې یوې ډلې خپل خپل ګودر پیژندلو | اومونږ په دوئ باندې د وریځې سیورې اوکړو

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الۡغَمَامَ | وَاَنۡزَلۡنَا | عَلَیۡهِمُ | الۡمَنَّ | وَالسَّلۡوٰی ؕ | كُلُوۡا | مِنۡ طَیِّبٰتِ |
| وریخ | اونازل کړو مونږه | په هغوئ باندې | ترنجبین | اومرزان | خورئ | دپاکو څیزونو نه |

او مونږ په دوئ باندې من اوسلوی نازله کړه | اوورته مو اوونیل، چې تاسو هغه پاک څیزونه خورئ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مَا | رَزَقۡنٰكُمۡ ؕ | وَمَا ظَلَمُوۡنَا | وَلٰكِنۡ | كَانُوۡۤا |
| هغه | چې درکړې دی مونږ تاسو ته | اونهٔ وو کړې هغوئ ظلم په مونږ باندې | لیکن | اووُ هغوئ |

چې کوم مو تاسو ته درکړی دی | اودوئ په مونږ هیڅکله زیاتې نهٔ وو کړې | خو په خپله ئې

| أَنفُسَهُمْ | يَظْلِمُونَ۝ | وَإِذْ | قِيلَ | لَهُمُ | اسْكُنُوا |
|---|---|---|---|---|---|
| په خانونو خپلو | چې ظلم ئې کولو | او کله چې | اوونیلي شو | هغوئ ته | چې اوسئ تاسو |

په خپلو خانونو زیاتي کړې وو ................. او کله چې دوئ ته اوونیلي شو چې په دې فلاني

| هَٰذِهِ الْقَرْيَةَ | وَكُلُوا | مِنْهَا | حَيْثُ | شِئْتُمْ | وَقُولُوا |
|---|---|---|---|---|---|
| په دې کلي کښې | اوخورئ | دهغې نه | هرخائې کښې | چې خوښه شي ستاسو | اووایئ |

کلي کښې اوسیږئ | اودهغې دفصلونونه پخپله مرضئ خوراک کوئ | ...................او

| حِطَّةٌ | وَادْخُلُوا | الْبَابَ | سُجَّدًا | نَّغْفِرْ | لَكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| بښنه اوکړه | او ننوځئ | دې دروازې ته | په حالت دسجدې کښې | اوبه بښو مونږه | تاسو ته |

اوحطة حطة وائي | اودښار دروازې ته سرټیټې داخل شئ | .................نو مونږ به ستاسو

| خَطِيئَاتِكُمْ ۚ | سَنَزِيدُ | الْمُحْسِنِينَ۝ | فَبَدَّلَ | الَّذِينَ | ظَلَمُوا |
|---|---|---|---|---|---|
| گناهونه ستاسو | زیات به کړو مونږ | نیکان خلق | پس بدله کړه | هغه کسانو | چې ظلم ئې کړې وو |

گناهونه معاف کړو | اونیکانو خلقو سره به ددې نه زیاته مهرباني کوؤ | نوپه دوئ کښې چې

| مِنْهُمْ | قَوْلًا | غَيْرَ الَّذِي | قِيلَ | لَهُمْ | فَأَرْسَلْنَا |
|---|---|---|---|---|---|
| دهغوئ نه | وینا | چې بدله وه دهغه خبرې نه | چې وئیلي شوې وه | هغوئ ته | نو اولیږو مونږه |

ځوک ظالمان وو | هغوئ خودلې ټکې په بل ټکې بدل کړو | نومونږ په هغوی باندې

| عَلَيْهِمْ | رِجْزًا | مِّنَ السَّمَاءِ | بِمَا | كَانُوا | يَظْلِمُونَ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| په هغوئ باندې | عذاب | دآسمان نه | په سبب دهغې | چې وو هغوئ | چې ظلم ئې کولو |

دآسمان نه عذاب نازل کړو | ...................دا په دې سبب چې هغوی به ظلم کولو

د دې ټولو ایاتونو تفسیرپه سورة بقره کښې تیرشوې دې.هغه مدنی سورة دې او دا سیاق ایت مکی دې. د دې آیاتونو اود هغه آیاتونو فرق هم مونږ ذکر کړې دې. بیاد بیانولو ضرورت نشته.

| وَاسْأَلْهُمْ | عَنِ الْقَرْيَةِ | الَّتِي | كَانَتْ | حَاضِرَةَ | الْبَحْرِ | إِذْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوتپوس اوکړه دهغوئ نه | دحال دکلی | هغه کلي | چې وو | په غاړه | دسمندر | کله چې |

اوددوئ نه دهغه کلي (دخلقو) متعلق تپوس اوکړه | چې دسمندرپه غاړه اباد وو | کله چې به

| يَعْدُونَ | فِي السَّبْتِ | إِذْ | تَأْتِيهِمْ | حِيتَانُهُمْ | يَوْمَ |
|---|---|---|---|---|---|
| دحدنه اوړیدل هغوئ | په ورځ دخالی | کله چې | راتلل به هغوئ ته | میان دهغوئ | په ورځ |

هغوئ د خالی په ورځ دحد نه تجاوز کولو | هغوی ته به دخالی په ورځ کبان

| سَبْتِهِمْ | شُرَّعًا | وَيَوْمَ | لَا يَسْبِتُونَ ۙ | لَا تَأْتِيهِمْ ۚ |
|---|---|---|---|---|
| دخالی دهغوئ | سرداوبو ته | اوپه هغه ورځ کښې | چې داخل به نه وو هغوئ په خالی کښې | نونه به راتلل هغوئ ته |

ښکاره راتلل | .............او چې د خالی ورځ به نه وه نو نه به راتلل

| كَذٰلِكَۚ | نَبْلُوْهُمْ | بِمَا | كَانُوْا | يَفْسُقُوْنَ۝ |
|---|---|---|---|---|
| همدارنګې \| اوزمائيل مونږ هغوئ \| په سبب دهغې \| چې وو هغوئ \| چې نافرماني به ئې كوله \| | | | | |
| نو په دې طريقه مود هغوئ امتحان اوكړو \| ځكه چې هغوئ ډير نافرمانه خلق وو \| | | | | |

**قوله تعالى: إِذْ يَعْدُوْنَ فِى السَّبْتِ**

**دَ اصحاب سبت چلول:-** دالله تعالى قول دې ﴿وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ الَّذِيْنَ اعْتَدَوْا مِنْكُمْ فِى السَّبْتِ﴾ يعنى تاسو هغه خلق پيژنئ چه د خالى د ورځې باره كښې ئې د حدنه زياتې كړې وو. هم د دې آيت په رڼرا كښې د دې ځائ د آيت وضاحت كولې شى. الله تعالى خپل نبى ﷺ ته ارشاد فرمائى چه كوم يهوديان تاسو سره دى د هغوى نه دهغه خلقو واقعات معلوم كړئ چاچه د الله تعالى د امرمخالفت اوكړو نود هغوى د سر كشئ ځنګه اچانك سزاوركړې شوه اوهغوى د دې خبرې د بدې نتيجې نه اوويروه چه ستا دا صفتونه پټوى. او چه كوم په خپلو كتابونوكښې بيامومى ځكه چه دا نوريهوديان هم دې عذاب سره مخ نه شى چه د هغوى اسلاف ورسره مخ شوې وو. د دغه كلى نوم ايله وو اودا د بحر قلزم په غاړه واقع وو. او په دې آيت كښې چه د دې كلى والو نه تپوس اوكړئ چه د سمندرغاړې سره اوسيږى. د كوم كلى ذكر چه دې دهغې نوم د حضرت ابن عباس ؓ د وينا مطابق ايله وو كوم چه د مدين او طور په مينځ كښې واقع دې اوداقول هم دې د دې نوم معتادې اوهغه د مدين او عينونا په مينځ كښې دې. د﴿يَعْدُوْنَ﴾ مطلب دې چه هغوى د خالى د ورځې باره كښې د الله تعالى د حكم مخالفت كوى او په هغه ورځ خويه كبان په آزادئ سره پورته راتلل اوچه كله به د خالى ورځ نه وه نود غاړې اوبوله به هيڅ كله هم نه راتلل.دا مونږ ولې اوكړه؟ صرف د دې د پاره چه د هغوى حكم منلوكښې آزميښت اوكړو. د ښكار د حرمت والا په ورځ خو به كبان د توقع نه خلاف مخې ته وو او په كومو ورځوكښې چه ښكار حلال وو پټيدل به. دا يو امتحان وو ځكه چه هغوى د الله تعالى د تابعدارئ نه كوتاهى كوله. خو هغه خلقو د الله تعالى حرمت ماتولو د پاره مختلف قسمه حيلې او بهانې لټولې اود ممنوع ارتكاب كولو د پاره د غلويه دروازه باندې ننوتل غوښتل.حضور ﷺ فرمائيلى دى چه تاسوهغه كارمه كوئ كوم چه يهوديانوكول چه دحيلې سوچ كولو سره ئې حرام حلال كړلو.([1])

| وَاِذْ | قَالَتْ |
|---|---|
| \|اوهركله چې\| اووئيل | |
| \| اوكله چې په هغوئ | |

| اُمَّةٌ | مِّنْهُمْ | لِمَ | تَعِظُوْنَ | قَوْمَاۙ | اِۨللّٰهُ | مُهْلِكُهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يوې ډلې \| دهغوئ نه \| ولې \| نصيحت كوئ تاسو\|هغه قوم ته \| چې الله \| هلاكونكې دهغوئ دې | | | | | | |
| كښې يوې ډلې اووئيل \| چې تاسوداسې خلقو ته ولې نصيحت كوئ \|چې الله ﷻ د هغوى هلاكونكې دې | | | | | | |

| اَوْ مُعَذِّبُهُمْ | عَذَابًا | شَدِيْدًاؕ | قَالُوْا | مَعْذِرَةً | اِلٰى رَبِّكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| ياعذابونكې دهغوئ دې\| په عذاب\| سخت سره \| اووئيل هغوئ\| دپاره دعذر \| رب ستاسو ته | | | | | |
| يا ورته سخته سزا وركونكې دې\| هغوئ ورته اووئيل چې مونږ داكار ځكه كوو چې الله ته خپل عذر پيش كړو | | | | | |

---

[1]) دا روايت دَ ابن بطه په وجه سرهٔ ضعيف دې.

| وَلَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ﴿۱۶۴﴾ | فَلَمَّا | نَسُوْا | مَا | ذُكِّرُوْا |
|---|---|---|---|---|
| او بنائي چي هغوئ | اويريږي | پس كله چي | هير كړو هغوئ | هغه | چي نصيحت شوي وو هغوئ ته |

اوكيدې شي چي هغوئ منع شي | نوهر كله چي هغوئ هغه نصيحتونه هير كړل كوم چه ورته كولي شو

| بِهٖ | اَنْجَيْنَا | الَّذِيْنَ | يَنْهَوْنَ | عَنِ السُّوْٓءِ | وَاَخَذْنَا |
|---|---|---|---|---|---|
| په هغي سره | نوبچ كړل مونږه | هغه كسان | چي منع كول ئې خلق | د بدئ نه | اواونيول مونږه |

نو مونږ هغه خلقو ته نجات وركړو كومو چي به بدئ نه خلق منع كول | او مونږ هغه

| الَّذِيْنَ | ظَلَمُوْا | بِعَذَابٍ | بَئِيْسٍ | بِمَا | كَانُوْا |
|---|---|---|---|---|---|
| هغه كسان | چي ظلم ئې كړي وو | په عذاب | سخت سره | په سبب دهغي | چي وو هغوئ |

خلق راونيول چي ظلم به ئې كولو| ............ او په ناترسه عذاب كښې مو راونيول خكه چي هغوئ به

| يَفْسُقُوْنَ﴿۱۶۵﴾ | فَلَمَّا | عَتَوْا | عَمَّا | نُهُوْا | عَنْهُ |
|---|---|---|---|---|---|
| چي نافرماني به ئې كوله | چي نوهر كله | سركشي اوكړه هغوئ | دهغي نه | چي منع كړې شوي وو | دهغي نه |

نافرماني كوله | بيا چي هغوئ دهغه كارونونه منع نهٔ شو چي د كومونه منع كړې شوي وو

| قُلْنَا | لَهُمْ | كُوْنُوْا | قِرَدَةً | خٰسِـِٕيْنَ﴿۱۶۶﴾ |
|---|---|---|---|---|
| اوونيل مونږه | هغوئ ته | شئ | شادوګان | ذليله |

نومونږ ورته اوونيل چي ذليله شادوګان شئ | ............

**قوله تعالى:: فَلَمَّا نَسُوْا مَا ذُكِّرُوْا بِهٖ**

**دَ بنى اسرائلو درې ډلې او امربالمعروف ونهى عن المنكر فريضه:-** ارشاد كيږي چه دا كلى وال په واقعه كښې دننه درې قسمه شو. يو خو هغه چه د خالى په ورځ ئې د كبانونيولو پاره حيلې اختياركړې او د ممنوع كار ارتكاب ئې اوكړو. لكه چه په سورة بقره كښې تيرشوى دى. بل هغه خلق وو چا چه دا مرتكبين منع كولو او په دې كاركښې د هغوى نه جدا وو. دريم هغه ډله چه د دې باره كښې بالكل چپ او خاموش وه. نه ئې پخپله داسې كول او نه ئې نور د دې نه منع كول بلكه منع كونكو ته ئې ونيل چه داسې خلقو ته د نصيحت كولو څه فائده كوم چه الله تعالى هلاك كول او عذاب وركول غواړى. تاسو ته معلومه ده چه دا د عذاب مستحق شوى دى اودوى د نصيحت هيڅ اثر نه اخلى. نو هغوى جواب وركوى چه د الله تعالى په نيز خو به مونږ معذوره ګنړلې شو چه ولې مو نه دى بندكړې. خكه چه ښه خبرې خودل اود خرابو خبرونه منع كول پكار دى.

بعضې خلقو د **(معذرة)** په خاىٔ **(معذرة)** په رفع سره لوستلې. يعنى دا معذرت دې او بعضو **(معذرة)** تفسير سره يعنى مونږ د معذرت د پاره هغوى منع كوو او څه عجيبه نه ده چه هغوى د دې نه منع شى او الله تعالى ته توبه اوكړى خو چه هغوى كله د نصيحت د قبلولو نه انكار اوكړو نو چه كومو خلقو دوى د دې بدئى نه منع كول هغوى خو مونږ بچ كړل اودا د ګناه كونكى ظالمان مونږ اونيول او هغوى له مو دردناك عذاب وركړو. دلته د منع كونكو خلاصې او د ګناه كونكوهلاكت اوخودلې شو اود غير ساكتينو خلقو باره كښې سكوت اختياركړې شوې دې. خكه چه بدله هم داسې وركړې كيدې شى څنګه چه عمل وى. په دې وجه هغوى نه د مدح حقدار شو خكه چه د مدح قابل كار ئې نه وو كړې. او

نه د مذمت حقدار شو ځکه چه د ګناه ارتکاب نې نه وو کړې. بیا هم دې کښې د امامانو اختلاف دې چه آیادهغوی خلاصې به شوې وی یاهلاکت به نې شوې وی؟ حضرت ابن عباس ﷺ فرمانی چه د خالی په ورځ خو به کبان ډیر راتلل او په نورو ورځوکښې به نه راتلل. په دې حال باندې څه موده تیریدونه پس په هغوی کښې بعضې خلقو به د خالی په ورځ هم کبان نیول نو بعضې خلقو به هغوی ته ونیل چه په دې ورځ خو د کبانونیکار حرام دې. خود هغوی سرکشی قانم وه. او څه خلقو برابر هغوی منع کول نوچه پدې باندې هم څه موده تیره شوه نود منع کونکو یوې ډلې ته خپلوانو اوونیل چه دې کمبختانو ته د منع کولو څه فائده په دوی د الله تعالی عذاب متحقق شوی دې دوی ته ولې نصیحت کونې. دا خلق د منع کونکو په نسبت د الله تعالی په لارکښې ډیر غصه ناك وو. نو منع کونکو اوونیل چه الله تعالی دې مونږ معاف کړی مونږ معذرت کوو. نولکه دا دواړه ډلې د منع کونکو نه وی خو چه کله د الله تعالی عذاب نازل شو نودا دواړه ډلې خو بچ شوې اودا د غلا دروازې والا تختیدونکی سرکش ګناهګار خلق بیزوګان جوړکړې شو.

**دابن عباس ﷺد ژړا سبب اود اصحاب السبت تفصیلی واقعه:**:عکرمه ﷺ فرمانی چه زه یوه ورځ حضرت ابن عباس ﷺ له راغلم هغه ژړه غونې شان وو او مصحف نې په غیږ کښې پروت وو. ما دا خبره اهمه اوګڼړله اودهغه خواله ورغلم اوورسره کیناستم او تپوس مې ترې اوکړو تاسو ولې ژاړنی. هغوی اوونیل د قرآن پاك دا پانړې مې ژړوی. دسورة اعراف تلاوت نې کولو ونیل ایله څه ته واثی پوهیږې؟ ما ونیل او، نو هغه ونیل چه په ایله کښې به یهودیان اوسیدل او هغوی ته د خالی په ورځ د کبانو د ښکارممانعت وو.دهغوی د ازمینت د پاره کبانوته حکم ووچه هغوی دې صرف دخالی په ورځ راوځی. د خالی په ورځ به دریاب د کبانونه ډك وو. تازه مزیدار چاق او ښکلی کبانو به ډیر زیات د اوبو د پاسه توپونه وهل راوهل. د خالی د ورځې نه علاوه به ډیر په ګرانه ملاویدل. څه ورځې خو دې خلقو د الله تعالی د حکم عظمت اوکړو اود هغې د نیولونه منع وو خو بیا شیطان د هغوی په زړونو کښې دا قیاس واچولو چه ممانعت خو د خالی په ورځ د کبانود خوړلو نه دې اود خالی په ورځ خو کبان نیولې شنی خو خوړلې نه شنی بله ورځ نې خورنی.دا سوچ دیوې ډلې شو ولې دویمې ډلې ونیل چه نه د خوړلواونیولو دواړونه ممانعت دې. غرض ددې بحث نه پس جمعه راغله نودې خلقوخپلې ښځې او بچې راواخستل او اووتل. د هغوی ښی طرف ته منع کونکې ډله وه چه د هغوی نه جدا پاتې شو او ګس طرف ته بله ډله وه چا چه خاموشی اختیار کړې وه. د ښی طرف والا اوونیل ګورنی مونږ تاسو منع کوو چرته داسې نه وی چه د الله تعالی د عذاب مستحق جوړشئ. د ګس طرف والا ونیل چه دې هلاك کیدونکو اود الله تعالی په عذاب کښې راګیریدونکی قوم ته څه ته نصیحت کونې دوی چرته منونکی نه دی؟ اصحاب یمین اوونیل الله تعالی دې مونږ معاف کړی په دې وجه نې مونږ منع کوو چه کیدې شی منع شی. زمونږ خو د زړه خواهش دې چه په عذاب کښې راګیر نه شی که هغوی منع نه شو نو الله تعالی دې معاف کړی. ولې هغه خلق په خطا باندې قانم وو نو هغوی ونیل چه اې د رب دښمنانو آخر تاسو اونه منل. په الله تعالی قسم زمونږ خودا اندیښنه ده چه په تاسو به ورځ هم تیره نه وی چه یا به په زمکه کښې ورخښ کړې شنی او یا به درباندې کانړی راووریږی او یا هم داسې څه بل عذاب. دا منع کونکی او چپ پاتې کیدونکی د الله تعالی د عذاب د وجه د ښار نه بهر اووتل او دا ګناهګاران په ښارکښې دننه وو. د ښار د پناه دروازه نې د دننه نه اولګوله. اوس بهر پاتې کیدونکی سحردفصیل دروازې ته راورسیدل خلق بهر نه وو راوتلی دروازه د دننه نه بند وه ډیره نې اوټکوله آوازونه نې ورکړل خو هیڅ جواب ملاؤ نه شو. اوس نې د فصیل په دیوال باندې پاوړنې اولګوله او وراوختل. څه ګوری چه دا ټول بیزوګان جوړ شوی دی او اوږدې اوږدې لکئی نې دی. د ښار پناه

دروازه نی کولاؤ کړه دننه لاړل. دې بیزوګانو خپل خپلوان اوپیژندل خو انسانانو خپلوان بیزوګان اونه پیژندل. دا بیزوګانې به خواته راتلې او د هغوی په پښوکښې به پریوتې نو انسانانو به هغوی ته ونیل چه آیا مونږ به تاسو منع کولې نه نو په سرخوزولو سره به ئې ونیل چه اوبیا حضرت ابن عباس ﷺ دا آیت اولوستلو کله چه هغوی نصیحت اونه منلو نو منع کونکی مونږ بچ کړل او ظالمان مو په عذاب کښې راګیرکړل. ابن عباس ﷺ وائي چه منع کونکی خو زه پیژنم چه خلاصي ئې بیاموندو خو د نورو باره کښې داسې نه پوهیږم. مصیبت خو هم دا دې چه مونږ هم خلق په ګناه کولو وینو خو هغوی ته هیڅ نه وابو. نو عکرمه ﷺ وائي چه ما اوونیل زه تانه باندې قربان شم دا نور خو هم د دې ګناهګارانونه ډیر ناراضه وو اود هغوی مخالفت به ئې کولو او ونیل به ئې چه دې هلاك کیدونکوته به څه نصیحت کوي. دې نه ظاهریږي چه هغوی په عذاب نه شي شریکولې. نو ابن عباس ﷺ خوشحاله شو او ماته ئې دره کښې په انعام کښې راکړې.([1])ابن جریر فرمائي چه ابن روما ګمان کوي او وائي چه کبان به د خالي په ورځ غاړې ته ډیر زیات ښکاره کیدل اوچه کله به ماښام شو نو د بل خالي پورې به نه ښکاریدل. یوه ورځ یو سړي جال پړی او میخونه یوړل او هلته ئې اولګول یو لوئ کب په هغې کښې د خالي په ورځ اونختلو اود خالي ورځ تیریدو سره چه کله د اتوار شپه راغله نو کب ئې راونیولو او سور ئې کړو او وئې خوړلو. د کب بوئي پسې خلق په منډه راغله د هغه نه ئې تپوس اوکړو خو هغه انکاراوکړو. چه ډیر اصرار ئې اوکړو نو وئې ونیل چه هغه د کب یعنی ماهی څرمن مونږ موندلې وه او چه کله دویم خالي راغلو نو بیا ئې داسې اوکړل او د اتوار په شپه ئې هغه سور کړو اوونې خوړلو. خلق د کب خوشبو موندلو باندې بیا راغله تپوس ئې اوکړو نو وئې ونیل چه تاسو هم داسې کوئی چه څنګه زه کوم. هغوی ونیل چه ته څه کوې، نوهغه ورته خپله حیله اوخودله نو نورو خلقو هم په دې حیله باندې عمل شروع کړو. تردې چه دا خبره ډیره عامه شوه. د هغوی یو ښار وو هغې ته به ئې ربض ونیل اود دې ښار دروازه به ئې د شپې بندوله.نو په شپه شپه کښې د هغوی شکلونه وران شو اود هغوی د ګاونډ کلي وال چه د هغوی د کلي په خواوشا کښې اوسیدل اوسحر به د کارکسب د پاره ښار ته راتلل نو دروازه بنده وه آوازونه ئې او کړل خو جواب ملاؤ نه شو. په دیوال باندې پاس اوختل چه وئې کتل نو هغوی بیزوګان جوړ شوی وو. نیزدې به راتلل او خپلو خلقو پورې به انختل. په سورة بقره کښې د دې تفصیل مونږ بیان کړې دې هلته کتل کافي دی.

**د ساکتینو د هلاکت قول:** یوبل قول داهم دې چه چپ پاتې کیدونکی خلق هم په عذاب کښې اخته شو خکه چه دې خلقو به هغوی په سره کولو او خوړلو لیدل خو منع کولې ئې نه صرف یوې ډلې منع کړې وو او تردې چه د هغوی دا عمل په عام توګه باندې تقلید کولې شو نو هغه بعضو خلقو ونیل چه ولې دا ظالمان منع کوئی دوی خو سخت عذاب سره مخ کیدونکی دی او مونږ خو د دوی د دې عمل نه سخت ناراضه یو. ابن عباس ﷺ فرمائي چه دا درې ډلې وې او په هغوی کښې صرف منع کونکې ډله بچ شوه باقي دواړه په عذاب کښې راګیرشو. خود عکرمه ﷺ وقول ته لکه چه بیا ابن عباس ﷺ واپس رجوع اوکړه څکه چه هغه ته ئې په انعام کښې حله او لباس ورکړو. نود دې قول نه هغه د رجوع والا قول بهتردې چه چپ پاتې کیدونکی خلقو هم خلاصي بیاموندلې وو. اودالله تعالی دقول نه﴿ وَأَخَذْنَا الَّذِينَ ظَلَمُوا بِعَذَابٍ بَئِيسٍ﴾ په دې خبره دلالت کیږي چه د هغوی نه سوا چه کوم دوه قسمه خلق بچ شو نو هغوی ته به خامخا خلاصي ملاؤ شوې وی.

د﴿بَئِيسٍ﴾ معنی ده سخت یا الیم دردناك دا ټولې معنې په خپل مینځ کښې نیزدې دی والله اعلم.د

---

[1]) حاکم:۲/۳۲۲.

﴿خَاسِئِينَ﴾ معنى ده ذليل او خوار.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَإِذْ | تَأَذَّنَ | رَبُّكَ لَيَبْعَثَنَّ | عَلَيْهِمْ | إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ | مَن |
| اوكله چې | خبر وركړو | رب ستا چې خامخا به راليږي | په دوى باندې | ادورځې دقيامت پورې | هغه خوك |
| اوهغه وخت يادكړه چې ستارب دا اعلان اوكړو چې دقيامت ورځې پورې به په دې بنى اسرائيلو داسې | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَسُومُهُمْ | سُوءَ الْعَذَابِ | إِنَّ | رَبَّكَ | لَسَرِيعُ |
| چې رسوى به دوى ته | سخت عذاب | بيشكه | رب ستا | خامخا زر وركونكې دې |
| خلق مسلط كړم \| چه دوى ته به دذلت عذاب وركوى \| ..........بېشكه ستا رب په سزا وركولو كښې | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| الْعِقَابِ | وَإِنَّهُ | لَغَفُورٌ | رَّحِيمٌ |
| دعذاب | اوبيشكه هغه | خامخا بښونكې دې | رحم كونكې دې |
| ډيرتيز دې \| او هغه ذات بښونكې او مهربان دې \| . | | | |

قوله تعالى: مَن يَسُومُهُمْ سُوءَ الْعَذَابِ

**ديهوديانوپوره تاريخ د ذلت اورسوائې تاريخ دې.-** ﴿تَأَذَّنَ﴾په وزن د﴿تفعل﴾ دې داذان نه مشتق دې يعنى حكم نى وركړو يانې معلومه كړه. په دې آيت كښې دقوت كلام شان دې د دې د پاره د ﴿لَيَبْعَثَنَّ﴾ (ل) دقسم دمعنې قسم فائده وركوى. د دې د پاره د (ل) نه پس هم ﴿يَبْعَثَنَّ﴾ راوړلې شو. د ﴿هم﴾ ضمير د يهوديانو طرف ته دې. يعنى الله تعالى حكم لګولې دې چه په دې يهوديانوباندې به ترقيامته پورې خراب عذاب نازليږى. يعنى د دې د ګناه او مخالفت او په هره خبره كښې د حيلو په سبب به دوى ته د ذلت او حقارت عذاب ملاويږى. وانې چه موسى ﷺ په دوى باندې د اووه كالو يا ديارلسوكالو پورې خراج لګولې وو. اود ډيرلونه اول خراج هم هغوى لګولې وو. بيا په دې يهوديانو باندې يونانيانو، كشدانيانو اوكلدانيانو تسلط پاتې وو. بيا د نصرانيانو د غضب لاندې راغلل او هغوى دوى ذليل كول جزيه او خراج نى ترې اخستلو. اسلام راغلونوحضور اكرم ﷺ په دوى باندې خپله غلبه اوساتله هغوى ذميان وو او جزيه به نى وركوله. بيا به آخركار دوى د دجال امداديان جوړيږى راوځى به خو مسلمانان به دوى قتل كړى. حضرت عيسى ﷺ به د دې مقصد د پاره د مسلمانانو ملګرتياكوى او دا هرڅه به قيامت سره نيزدې كيږى. ﴿إِنَّ رَبَّكَ لَسَرِيعُ الْعِقَابِ﴾يعنى الله تعالى د ګناهګارانونه ډير زر بدله اخستونكې دې. خو هغه ډير بښونكې او مهربان دې. څوك چه توبه كوى هغه بښى. دلته هم دغه خبره ده چه د عذاب او رحمت خبرې دواړه په يو ځاى ذكر دې. دې د پاره چه د عذاب نه ويرولو په سبب خلق په اميدكښې اخته نه شى په دې وجه ترغيب او ترهيب دواړه په يوځاى دى دې د پاره چه خلق د ويرې او رجاء په مينځ كښې وى.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَقَطَّعْنَاهُمْ | | | | | |
| اوجداجداكړل مونږه هغوى | | | | | |
| اومونږ دوى ټول په | | | | | |
| فِي الْأَرْضِ | أُمَمًا | مِّنْهُمُ | الصَّالِحُونَ | وَمِنْهُمْ | دُونَ ذَٰلِكَ |
| په زمكه كښې | دلې دلې | اخينى دهغوى نه | نيكان دى | اوځينى دهغوى نه | نه دې دغسې |
| زمكه باندې جداجداكړل په دوى كښې څوك نيكان وو او څوك په كښې بل شان وو | | | | | |

وَبَلَوْنٰهُمْ بِالْحَسَنٰتِ وَالسَّيِّاٰتِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ۝

او وامتحان او کړو مونږ په هغوئ| په ښۀ حالاتو سره| او په بدو حالاتو سره| د پاره ددې چې هغوئ| واپس شي

او په ښۀ او بد (دواړه) کارونو موږ امتحان اوکړو | ددې دپاره چې (نافرمانئ نه) واپس شي

فَخَلَفَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ وَّرِثُوا الْكِتٰبَ يَاْخُذُوْنَ

نو پاتې شول| روستو د هغوئ نه | نااهله خليفه ګان| چې وارثان شول| دکتاب | چې اخلي هغوئ

بيا د دغي نسلونو نه پس داسي نااهله اولاد پاتې شوا او (دالله ﷻ) دکتاب وارثان شول| چې په دې

عَرَضَ هٰذَا الْاَدْنٰى وَيَقُوْلُوْنَ سَيُغْفَرُ لَنَا ۚ وَاِنْ يَّاْتِهِمْ

فائدې | ددې معمولې دنيا| او وايي | زر ده چې معافي به اوشي مونږ ته| او که راشي هغوئ ته

د دنيا مال ومتاع راغونډوي| او دوئ وايي چې اميد دې چې معافي به راته اوشي | او که بيا ورته

عَرَضٌ مِّثْلُهٗ يَاْخُذُوْهُ ؕ اَلَمْ يُؤْخَذْ عَلَيْهِمْ مِّيْثَاقُ

مال اسباب| په مثل د دغې |نو اخلي هغوئ هغه|آيا نه ده اخستې شوې| ددوئ نه | وعده

هغه شان مال په لاس ورشي | نو اخلي ئې | آيا ددوی نه په کتاب تورات کښې کلکه

الْكِتٰبِ اَنْ لَّا يَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ اِلَّا الْحَقَّ وَدَرَسُوْا مَا

دکتاب | چې نۀ به وايي دوئ | په الله | مګر حق |او لوستلې دې دوی پخپله| هغه څه

وعده نۀ وه اخستې شوې | چې دالله په نوم به بغير د حق نه نور څه نۀ وايي | او دوئ لوستې دې هغه څه

فِيْهِ ؕ وَالدَّارُ الْاٰخِرَةُ خَيْرٌ لِّلَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ ؕ

چې په هغې کښې دي| اوکور | آخرې | بهتره دې د دپاره دهغه کسانو| چې ويريږي

چې په هغې کښې ليکلې شوې دي | او دآخرت کور پرهيزګارانو د پاره بهتر دې

اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ۝ وَالَّذِيْنَ يُمَسِّكُوْنَ بِالْكِتٰبِ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ ؕ

آيا تاسو عقل نۀ لرئ | او هغه کسان | چې پابندي کوي | د کتاب | او قائم ئې کړو مونځ

آيا سو نۀ پوهيږئ| او څوک چې په کتاب باندې په پابندئ سره عمل کوي | او مونځونه باقاعده کوي

اِنَّا لَا نُضِيْعُ اَجْرَ الْمُصْلِحِيْنَ۝

بيشکه مونږه | نۀ ضائع کوؤ| اجر د نيکانو خلقو |

نو مونږ د نيکانو خلقو ثواب نه ضائع کوو|

**قوله تعالىٰ:: يَاْخُذُوْنَ عَرَضَ هٰذَا الْاَدْنٰى**

**د يهوديانو اونصاراو رشوت خواره قاضيان او ججان:-** ارشاد کيږي چه الله تعالى بنى اسرائيل ډلې ډلې کولو سره په دنيا کښې خواره کړل. لکه چه فرمائي دې نه پس مونږ بنى اسرائيلو ته اوونيل چه په زمکه باندې اوسيږئي کله چه دآخرت ورځ راشي نو مونږ به بيا تاسو ټول راجمع کړو. په دې بنى اسرائيلو کښې ښه خلق هم شته او هغه خلق هم چه ښه نه دي لکه چه پيريانو ونيل چه په مونږ کښې صالح

پیریان هم شته او غیرصالح هم او زمونږ هم مختلف فرقې دي. مونږ هغوی ته د ارام او مزو زمانه موهم ورکړه اود ویرې او مصیبت زمانه هم ورکړه او په دواړه قسمه مو ازمیښت کړل دې د پاره چه هغوی عبرت حاصل کړی او د خرابوکارونونه منع شی. بیا نې اوفرمائیل چه دې نه پس د هغوی جانشین داسې بې کاره ثابت شو چه د کتاب د وارثانو جوړیدلو باوجود د دې دنیا لږ شان دولت او شان شوکت له ترجیح ورکوی.په دې جانیشنوکښې هیڅ خیرنشته دوی د تورات صرف پخپله د لوستلو وارثان جوړشو او نورته نی اونه لوستلو. مجاهد رحمه الله وائی چه دې نه نصاری مراد دی خو کله دا آیت نور هم عام وو تر دی. نصاری او غیرنصاری ټول حق خبره خرڅوی اودې سره دنیاوی ګټه حاصلوی او خپل نفس هسې غولوی چه بیا به توبه اوکړو. خوکه د دې په شان داسې څه بله وجه پیدا شوه نو د مخکې په شان د دنیا په بدله کښې بیا دین خرڅوی. په آیاتونوکښې نی تحریف اوکړو غلطه مسئله او غلطه فتوی نی اخودله د دنیاوی د کوم څیز د حاصلولو صورت چه پیدا شو نو بیانې نه حلال ته اوکتل اونه حرام ته وانې خستلو او بیا توبې ته کیناستل. توبه نی اوویستله د الله تعالی نه نی ښښنه او غوښتله خو چه کله بیاد دنیا څه مال مخې ته راغلو نو بیا نی قدمونه اولړزیدل. په الله تعالی قسم دا ډیر بې کاره خلق وو. د انبیاء کرامو نه پس هم دغه خلق د تورات او انجیل وارثان وو سره د دې چه الله تعالی په کتاب کښې د هغوی نه وعده هم اخستې وه. او په یو بل ځائ کښې ارشاد کیږی چه د دې خلقو نه پس داسې خراب جانشین راغله چا چه مونځ ضائع کړو اود الله تعالی نه نی د لرې لرې امیدونه اوتړل او خپل نفس ته یې دهوکه ورکړه.(۱) چه کله د دنیا ګټلو موقع راغله نو بیانې هیڅ اونه لیدل او یو څیز هغوی د ګناه د کولو نه منع نه کړل. څه چه ملاؤشو وئې خوړل نه نی د حلالو پرواه اوکړه او نه د حرامو. د بنی اسرائیلوچه به کوم قاضی وو هغه به رشوت خور وو د هغوی خلقو به دغه رشوت خور اوویستلو او د هغه په ځائ به نی بل راوستلو هغه ته به دا تاکید کیدلو چه رشوت اخستلو سره فیصله مه کوه. هغه به وعده اوکړو اوچه قاضی او جج به جوړ شو نو په دواړو لاسونوباندې به نی رشوت راغونډولو او وئیل به نی چه الله تعالی ښښونکې دې. چه کله به نورو په ده باندې اعتراض او پیغوروغیره کولو خو چه کله به دا رشوت خور مړکیدلو یا به معزول کولې شو او هم دغه پیغورکونکې به قاضی جوړکړې شو نو هم دغه سړی به پخپله رشوت اخستلو. د دې د پاره الله تعالی فرمائی چه دنیا دوی له راغله او دوی راغونډول شروع کړل. الله تعالی فرمائی چه آیا په کتاب کښې د دوی نه وعده نه وه اخستې شوې چه د حق خبرې نه علاوه بله خبره الله تعالی طرف ته مه منسوب کونې. دا وعده ترې اخستې شوې وه چه خلقو ته د حق خبرې تلقین کول اود امر حق نه پټول. خو هغوی دا حکم شاته اوغورزولو اود لږو شان روپو په بدله کښې نی په آیاتونوکښې تحریف اوکړو یا نې د هغې غلط مطلب اوویستلو.د هغوی دا ګټه څه خرابه ګټه ده. (۲) هغوی د الله تعالی نه د ګناهونو د ښښنې خواهش لری. د ښښنې تمنا خو لری خو ګناهونه پریږدی نه، په توبه باندې قائم نه پاتې کیږی. که د الله تعالی نه ویریږنی نو دآخرت کور ستاسو دپاره بهتر دی په دنیاباندې ولې خان ورکونې. آیا دومره شان خبره باندې نه پوهیږی. الله تعالی د ډیر اجر ترغیب ورکوی اود ګناهونو د بدې نتیجې نه ویرول کوی دا د دین خرڅونکو ته لږ شان هم عقل نشته

**د متمکسینو بالکتاب تعریف:**:بیا الله ﷻ د هغه خلقو تعریف کوی چا چه د الله ﷻ کتاب سره تمسك لرلې دې کوم چه دوی د محمد ﷺ د اتباع طرف ته رابلی او دا څیز دهغوی په کتاب تورات او انجیل کښې درج دې. نوفرمائی چه څوك د الله ﷻ کتاب نیونکی دی. د دې په اوامرواونواهیو باندې عمل

---

(۱) ۱۹/مریم:۵۹.

(۲) ۳/آل عمران: ۱۸۷.



کونکي دي د ګناهونونه منع کيدونکي دي مونخونه کونکي دي نومونږبه د هغوی اجرنه ضائع کړو.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الْجَبَلَ | نَتَقْنَا | وَإِذْ | | | | |
| غر | اوکله چي اپورته کړومونږه | | | | | |
| اوهغه وخت يادکړه چي مونږ غر | | | | | | |
| خُذُوا | بِهِمْ | وَاقِعٌ | وَظَنُّوا أَنَّهُ | ظُلَّةٌ | كَأَنَّهُ | فَوْقَهُمْ |
| دپاسه دهغوی الکه چي هغه غر ابوه چتری وه اوکمان اوکړو هغوی چي هغه راپريوتونکي دي په هغوی باندي اونيسي | | | | | | |
| ددوی دسرونودپاسه داسي اوچت کړو لکه چتری ا اودوی ګمان کولوا چي بس دغه دي راپريوتلو | | | | | | |
| لَعَلَّكُمْ | فِيهِ | مَا | وَاذْكُرُوا | بِقُوَّةٍ | آتَيْنَاكُمْ | مَا |
| هغه اچي درکړي دي مونږ تاسوته اپه قوت سره اوياد ساتئ هغه اچي په دي کتبي دی ادپاره ددي چي | | | | | | |
| ورته مواوونيل، چي مونږکوم کتاب درکړي دي اهغه مضبوط اونيسئ او چي څه په کتبي دی هغه يادساتئ | | | | | | |
| تَتَّقُونَ | | | | | | |
| تاسو خان اوساتئ | | | | | | |
| شايد چي دګناهونونه بچ شئ | | | | | | |

**قوله تعالى: وَإِذْ نَتَقْنَا الْجَبَلَ فَوْقَهُمْ**

**په بني اسرائيلوغررازووندول، چه منلی که نه:-** او چه کله مونږ د هغوی په سرونوباندي غر په شان د تنبو رازوړند کړو لکه چه ﴿وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّورَ﴾ نه ظاهر دی.دا غرفربنتود هغوی په سرونوباندي راوچت کړي وو.ابن عباس ﷺ فرمائی چه کله نی حضرت موسی ﷺ پاکي زمکي ته بوتلواودغصي ختميدو نه پس نی تختني اوچتي کړي اود تبليغ د فريضي متعلق نی د الله تعالى حکم هغوی ته واورولو نو په هغوی باندي ګران تيرشو او د منلو نه نی انکاراوکړو. نو الله تعالى د هغوی په سرونوباندي غر رااوچت کړو لکه چه په سرونوباندي چت وی او ملائکو دا نيولي وو او ونيلي ګورئی دا د الله تعالى وحی او د هغه احکام دی په دي کتبي د حلالوحرامو او امر و نهی ذکر دي قبلوئی که نه؟ هغوی اوونيل چه اووايئي څه احکام دی، که دا فرائض او حدود آسان وی نو خامخا به نی قبول کړو. موسی ﷺ ونيل چه هرڅه دی قبول نی کړئی هغوی ونيل نه ترکومي چه مونږ خبرشو چه څه حدود او فرائض دی څنګه نی قبول کړو. څو خل دا سوال جواب اوشو.

**ديهوديانو په سجده کولو کنبي هم دهوکه:** آخر غرته دالله ﷻ حکم اوشو دخپل ځای نه اوچت شو او آسمان طرفته والوتو اود هغوی په سرونو راخورشو. موسی ﷺ اوفرمائيل چه الله ﷻ څه فرمائی منئی که نه.که تورات او ددي احکام نه منئی نوستاسو په سرونوباندي به غر راپريوځی.کله چه هغوی اوکتل چه غر راپريوزی نو په سجده باندي په ګس طرف پريوتل او په ښئی سترګه نی غرته کتل چه راپريوزی خونه. هم دغه وجه ده چه ترننه پوري کله هم يهوديان سجده کوی په خپل ګس طرف باندي کوی او وائی چه دا هغه سجده ده چه د عذاب د لري کولو يادګار دي. حضرت ابوبکر صديق ﷺ فرمائی چه کله موسی ﷺ تختني غورزولي وي کوم چه د الله ﷻ کتاب دي اود الله ﷻ سره ليکلي وي نود زمکي هر غرهره ونه هر کاڼړي اولرزيدو اوبه خوزيدوکنبي راغله. هم دغه وجه ده چه کله هر يهودی تورات لولی نوخپل سر خوزوی او تاويږی. لکه چه الله تعالى فرمائی هغوی خپل سر خوزوی. والله اعلم.

وَاِذۡ اَخَذَ رَبُّكَ مِنۡۢ بَنِىۡۤ اٰدَمَ مِنۡ ظُهُوۡرِهِمۡ ذُرِّيَّتَهُمۡ

او وکله چې | را اوویستل رب ستا | دبنی آدم نه | دشاګانو دهغوی نه | اولاد دهغوی

| اوهغه وخت یاد کړه چې ستارب دبنی آدمو دشاګانونه دهغوی اولاد راویستلو

وَاَشۡهَدَهُمۡ عَلٰۤى اَنۡفُسِهِمۡ ۚ اَلَسۡتُ بِرَبِّكُمۡ ؕ قَالُوۡا

او ګواهان نې کړل هغوی | په خانونو خپلو باندې | آیا نه یم زه | رب ستاسو | او وئیل هغوی

او هغوی نې په خپلو خانونو ګواهان کړل | او تپوس نې ترې اوکړو | چې زه ستاسو رب نه یم؟ | هغوی اووئیل

بَلٰى ۛۚ شَهِدۡنَا ۛۚ اَنۡ تَقُوۡلُوۡا يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ اِنَّا كُنَّا عَنۡ هٰذَا

هو (ولې نه) | ګواهي کوو مونږ | چې وایئ تاسو | په ورځ دقیامت | چې بیشکه وو مونږ | ددې نه

یقیناً ته زمونږ رب یې | مونږ په دې ګواهان یو | دا خکه چې تاسو دقیامت په ورځ دا اونه وایئ | چې مونږ ددې نه

غٰفِلِيۡنَ ۙ‏ اَوۡ تَقُوۡلُوۡۤا اِنَّمَاۤ اَشۡرَكَ اٰبَآؤُنَا مِنۡ قَبۡلُ وَكُنَّا

ناخبره | یا | وایئ | چې بیشکه | شرک کړې وو | پلارانو زمونږه | مخکښې | او وو مونږه

خبر نه وو | یا دا اونه وایئ چې شرک خو اول زمونږ پلارانیکه کړې وو | او مونږ د

ذُرِّيَّةً مِّنۡۢ بَعۡدِهِمۡ ۚ اَفَتُهۡلِكُنَا بِمَا فَعَلَ الۡمُبۡطِلُوۡنَ‏

اولاد | روستو دهغوی نه | آیا ته هلاکوې مونږه | په هغه کار باندې | چې کړې وو | غلط کارو خلقو

دهغوی په نسل کښې روستو راغلو نو آیا ته مونږ دهغې کارونو په وجه هلاکوې | چې وړاندې باطل پرستو کړې وو

وَكَذٰلِكَ نُـفَصِّلُ الۡاٰيٰتِ وَلَعَلَّهُمۡ يَرۡجِعُوۡنَ‏

او همدا رنګې | په تفصیل سره بیانوو مونږه | نښې دقدرت | او ودې دپاره | چې واپس راشي دا خلق

داشان مونږ خپلې نښې پیش کوو | دې د پاره چه کیدې شي دوی (حقې لارې ته) راوګرځي

**قوله تعالی:: وَاِذۡ اَخَذَ رَبُّكَ مِنۡۢ بَنِىۡۤ اٰدَمَ**

**عالم ارواح او وعده:**- د الله تعالی ارشاد دې چه الله تعالی د آدم ﷺ اولاد د هغه د شانه په روز ازل کښې بهر راوویستو او هغوی په خپلوخانونو باندې پخپله ګواهي ورکړه چه الله تعالی زمونږ رب او مالك دې الله تعالی هم هغه دې بل څوك نه دې. نو هم دغه اعتراف انساني فطرت دې او هم دغه د هغوی جبلت دې. لکه چه اوفرمائیلې شو تاسو خپله تهوله توجو د حق دین طرف ته قائمه ساتئ. الله تعالی هم په دې فطرت باندې د انسان جبلت جوړکړې دې. الله تعالی چه کوم څیز څنګه پیداکړو هم هغه شان به قایم وی په هغې کښې به هیڅ بدلون نه وی. حضور ﷺ فرمائیلی چه هر پیداکیدونکې او هرمخلوق په خپل فطرت باندې پیدا کیږی([1]) حضور ﷺ فرمائیلی د الله تعالی ارشاد دې چه ما خپل بندیګان د شرك نه اخوا پیداکړی دې خو شیطانان راخی او هغوی د حق دین نه اړوی او ما چه څه حلال کړی دی هغوی هغه حرام کوی([2]) او په یو روایت کښې دی چه هر پیداکیدونکې هم په دې مذهب اسلام باندې پیدا کیږی خودهغه مور پلار هغه یهودی، نصرانی او مجوسی جوړوی. لکه څنګه چه

[1]) صحیح بخاری کتاب الجنائز باب ماقیل فی اولاد المشرکین: ۱۳۸۵، صحیح مسلم: ۲۶۸۷.

[2]) صحیح مسلم کتاب الجنه باب الصفات التی یعرف بها فی الدنیا...: ۲۸۶۵، احمد: ۲۶۶/۴.

خناور ښه جوړ پيدا کيږي ايا څوك په کښې غوږ پرې شوي پيدا کيږي خود هغوى غوږ پرې کړي او هغه خراب کړي[۱] اسود بن سريع ﷺ فرمائي چه زه نبي كريم ﷺ سره په څلوروغزواتوكښې شريك ووم. مجاهدينو كافران قتل كړل اوده‌غوى بچي ئې راونيول. چا په كښې اووئيل يا رسول الله ﷺ! ولې دا د مشركانو بچي نه دي. حضور ﷺ اوفرمائيل چه په تاسوكښې د ښه نه ښه خلق هم د مشركانو اولاد دي. يو انسان داسې نه دې چه بغيرد اسلام نه پيداكيږي او هغه هم مسلمان پاتې كيږي اوتردې چه هغه د مور پلار ژبه زده كوى نو مور پلار هغه يهودي يا نصراني جوړوي.[۲]

**عالم ارواح كښې د ادم ﷺ نه د اولاد پيدا كولو كيفيت::** په احاديثوكښې وارد شوى دى چه د حضرت آدم ﷺ د شا نه اولاد واخستلې شو او هغوى ياخو اصحاب يمين او يا اصحاب شمال جوړكړې شو اود هغوى نه گواهي واخستې شوه چه هم الله تعالى د هغوى رب دې. د حضرت انس بن مالك ﷺ نه روايت دې چه حضور ﷺ فرمائيلي چه د قيامت په ورځ به يودوزخي نه تپوس اوكړې شي چه وايه كه ټوله زمكه او ددې املاك ټول ستا ملكيت شي او تاته اووئيلې شي چه دا ټول په فديه كښې وركولو سره به خلاصي بيامومې؟ نو هغه به وائي چه يقيناً به داسې اوكړم. نو الله تعالى به اوفرمائي چه ما خود دې نه ډير كم ستانه غوښتنه كړې وه. ما د حضرت آدم ﷺ په ملا كښې تاسو نه وعده اخستې وه چه څوك به زما شريك نه جوړوني خو تاسو شريكان جوړكړل.[۳]

**دا وعده په كوم ځائې كښې اخستې شوې وه::** ابن عباس ﷺ فرمائي چه په مقام نعمان كښې د عرفې په ورځ د ارواحو نه وعده اخستې وه اود حضرت آدم ﷺ نه د شانه راويستلو سره سرو وړوميږو په شان خواره كړې وو اوهغوى سره داسې خبرې اترې شوې وې. اوښايئې زه ستاسورب نه يم؟ ټولو ارواحانو اووئيل چه ولې نه ضرور.[۴]

**د ماشوم نه په قبر كښې سوال و جواب:** د حضرت جرير ﷺ نه روايت دې چه د ضحاك بن مزاحم خوئ مړشو چه صرف د شپږو ورځو وو. نو ضحاك ﷺ اووئيل چه اې جابره چه كله ته دې په لحدكښې كيږدې نود ده مخ په قبركښې كولاؤ كړه خكه چه دا ماشوم به كينولې شي اود ده نه به سوال جواب هم كولې شي. نو ما هم داسې اوكړه اود فارغيدو نه پس ما د ضحاك ﷺ نه تپوس اوكړو چه ستا د خوئ نه به څوك تپوس كوى او څه تپوس به ترې كوى؟ نو وئې وئيل چه ده نه به د ميثاق ازل باره كښې تپوس كولې شي كوم چه د آدم ﷺ ملا كښې د روحونونه د بندګئي اقراراخستې شوې وو. ما تپوس اوكړو چه هغه څه اقرار وو؟ وائي چه كله الله تعالى د حضرت آدم ﷺ ملا سره مسح كړل نود هغې نه هغه روحونه راووتل چه د قيامته پورې د آدم ﷺ د نسل نه كيدونكي دي. بيا د هغوى نه وعده واخستې شوه چه عبادت به هم د الله تعالى كوني او څوك به شريك نه جوړوني. بيا الله تعالى د دې روحونو د رزق كفيل شو دې نه پس آدم ﷺ د ملا ته هغه بيا واپس كړې شو. تركومې چه دا اهل ميثاق ښه طريقه سره پوره كوى نو ده ته ميثاق اول هم فائده وركولې شي او څوك چه په ميثاق آخر كښې مخكې د هغې نه چه د ميثاق آخر نوبت راشي او په دنياكښې ښه ښه كارونه پوره كوى نو پوهيدل پكار دى چه هغه د روز اول ميثاق يعنى د ازل په وعده باندې قائم وو چه د فطرت اسلام په بنا باندې

---

۱) صحيح بخارى كتاب التفسير سوره الروم باب (لاتبديل لخلق الله):۴۷۷۵، صحيح مسلم: ۲۶۵۸، ترمذى:۲۱۳۸، ابن حبان: ۱۳۰.

۲) احمد: ۴۳۵/۳، صححه الحاكم: ۱۲۳/۲ ووافقه الذهبي السنن الكبرى للنسائي: ۸۶۱۶، بدون ذكرالآيت.

۳) صحيح بخارى كتاب الاحاديث الانبياء باب خلق ادم وذريته :۳۳۳۴، صحيح مسلم: ۲۸۰۵، احمد:۱۲۷/۳، مسندابى يعلى:۴۱۸۶.

۴) احمد:۲۷۲/۱ وسنده حسن، السنن الكبرى للنسائي:۱۱۱۹۱، حاكم:۲۷۱/۱، وصححه ووافقه الذهبي.

دي. دا طرق دا خبره قوي کوي چه دا روایت په ابن عباس باندې موقوف دي. والله اعلم.

نبی کریم ﷺ فرمائیلي چه کله د آدم ﷺ نه اولاد رااویستلو نوداسې اولاد راؤوتلو کله چه گمنزه کولو کښې وینبته په گمنزکښې دننه وی. اوس الله تعالی د هغوی نه تپوس اوکړو آیا زه ستاسو رب نه یم؟ نو روحونو ونیل ته ضرور زمونږ رب یئې فرښتو اوونیل چه مونږ گواه یو چه د قیامت په ورځ چرته تاسو دا اونه وائې چه مونږ ته خود دې علم نه وو.(۱)

د حضرت عمر ﷺ نه روایت دې چه حضور ﷺ فرمائیلي الله تعالی چه کله آدم ﷺ پیدا کړو نو د هغه په ملا باندې ئې لاس رابنکلو نواولاد راوتل شروع شو. وئې فرمائیل چه فلانکې فلانکې جنتیان دی او دهغوی عمل به هم دجنتیانو په شان وی. اودا دوزخیان دی او د اهل نار په شان به عمل کوی. چا تپوس اوکړو چه یا رسول الله! چه دا هرڅه هم هلته فیصله شو نو بیا د عمل کولو څه مقصد پاتې شو؟ نو وئې فرمائیل چه د الله تعالی هم هغه بنده دجنت دپاره پیدا شوې دې د کومو عملونه به چه جنتیانو غوندې وی او پوهه شئی چه دوزخیان هم هغه دی چه د دوزخیانو په شان کار کوی اوهم په دې بدعمل وړاندې د توبه نه د هغه ساه اوځی.(۲)

**د ادم ﷺ د انکار قصه:**: حضور ﷺ اوفرمائیل چه کله د آدم ﷺ د ملا نه روحونه بنکاره شول نو د هر انسان په تندی باندې یوه رڼړا پرقیدله. دا ټول نسل حضرت آدم ﷺ ته پیش کړې شو. آدم ﷺ تپوس اوکړو اې ربه! دا څوك دی؟ اوفرمائیلې شو دا ټول ستا نسل دې. د یوسړی په مخ ډیره زیاته رڼړا وه هغه تپوس اوکړو دا څوك دې؟ الله تعالی اوفرمائیل یوې اوږدې زمانې نه پس به ستاپه اولاد کښې یو سړې وی چه هغه ته به داؤد وئیلې شی. حضرت آدم ﷺ عرض اوکړو اې ربه! د ده عمر به څوکاله وی؟ الله تعالی اوفرمائیل شپیته (۶۰) کاله نو حضرت آدم ﷺ عرض اوکړو اې ربه! ما د خپل عمر نه څلوینبت کاله ده ته ورکړل. کله چه د آدم ﷺ عمر ختم شو او ملك الموت راغلو نو آدم ﷺ ورته اوونیل چه اوس ولې راغلې زما خو لاڅلوینبت کاله عمر باقی پاتې دې. نو ورته اوونیلې شو چه د څه څلوینبت کاله تا خپل خوئ داؤد ﷺ ته نه وو ورکړی. آدم ﷺ انکار اوکړو نود هغه په نسل کښې د انکار خونی هم پریوتلو. د آدم ﷺ نه هیره شوی وه نو دا هیره هم د آدم ﷺ د اولاد خصلت جوړشو اود حضرت آدم ﷺ نه خطا شوې وه نو په دې وجه خطا هم د آدم ﷺ د اولاد فطرت شو. (۳) کله چه آدم ﷺ خپل اولاد ته اوکتل نو په هغې کښې بیمار هم وو. جذامی برص والا او ړانده هم وو نو آدم ﷺ عرض اوکړو اې ربه! دا داسې دې ولې جوړکړی دی؟ اوفرمائیلې شو چه انسان په هر حال کښې زما شکر ادا کړی. آدم ﷺ تپوس اوکړو اې ربه! دا څوك دی چه د سر نه واخله تر پښوپورې نور دې؟ اوونیلې شو دا انبیاء علیهم السلام دی.

**زمونږ عملونه کول دا نوی نه دی بلکه فیصله شویده:**: د حضور ﷺ نه چا تپوس اوکړو آیا اعمال نوی سر نه نتیجه ورکونکی دی یا چه څه مقرر شو بس مقررشو. اوفرمائیلې شو چه الله تعالی د حضرت آدم ﷺ نه اولاد پیدا کړو بیائې هم دهغوی په ژبه د هغوی نه د خپل توحید گواهی واخسته بیا ئې د هغوی نه دوه موټی ډك کړل او اوونیلې شو چه دا شو جنتیان او دا شو دوزخیان (۴) سره ددې چه په عمل باندې د جنت دوزخ انحصار دې. خو مونږ ته معلوم دی چه د جنتیانو غوندې عمل کول به په چا باندې آسان وی او په چا باندې به د دوزخیانو په شان عمل آسان وی نو هغوی به اوس هم په دې بنا

---

(۱) الطبری: ۲۳۲/۱۳.

(۲) ابوداؤد کتاب السنه باب فی القدر:۴۷۰۳، ترمذی:۳۰۷۵، احمد:۴۴/۱، حاکم:۲۷/۱، ابن حبان:۶۱۶۶.

(۳) ترمذی کتاب تفسیر القرآن باب ومن سوره الاعراف :۳۰۷۶وسنده حسن، الطبقات:۲۷/۱، حاکم:۲۷۶/۲.

(۴) مسندالبزاز:۲۱۴۰، الشریعه للاجری:۳۴۳.

باندې دوزخیان یا جنتیان وي. په ازل کښې مونږ څوك جنتیان یا دوزخیان نه دی جوړکړي د هغوی اعمال د هغې ذمه وار دی. البته مونږ اوس د دې دواړو علم لرو. په دې وجه فرمانی چه فلانکې به جنتی وي او فلانکې به دوزخی وی. نو داتقسیم زمونږ په وینا باندې نه شو بلکه دعمل په بناباندې شو دامونږ دحضرت ابوهریره ﷺ د حدیث وضاحت کړې دې.

**دنیاکښې دعملونوحکم شوې دې اخرت کښې بهانې ختمې:** حضورﷺ فرمانی چه کله الله تعالی مخلوق پیدا کړواوقسمت نې جوړکړو نو نبی او گس طرف ته روحونه وو الله تعالی د دواړو نه تپوس اوکړو چه آیا زه ستاسو رب نه یم؟ نو دواړو اعتراف اوکړو چه او ته زمونږ رب نې. بیا د دواړو طرفونو نبی او گس گډوډ کړې شو. چا د الله تعالی نه تپوس اوکړو چه یا الله! دا خو په جدا توگه باندې وو دا ولې دې گډوډ کړل. الله تعالی اوفرمائیل چه په دې کښې هیڅ حرج نشته د خپل خپل عمل په وجه هغوی اوس هم جدا وی. د یوځای کولو په وجه نیك او بد دواړه په خپل مینځ کښې نه یوځاي کیږي. كه مونږ داسې نه کول نو د قیامت په ورځ به گناهگارانو وئیل چه مونږ ته خو په هغې هیڅ علم نه وو او نیکانوخو به په هیڅ صورت کښې نه وئیل. اوس خبره صرف په عمل باندې پاتې شوه نو گناهگارانوته داعتراض کولو اود علم د نشت والي د عذر کولو هیڅ حق پاتې نه شو. رواه ابن مردویه[1] دا مونږ د حضرت ابو امامه ﷺ د حدیث وضاحت کړې دې. ابی بن کعب ﷺ ددې ایت مبارك په تفسیر کښې فرمانی چې د قیامت پورې پیدا کیدونکو روحونوته شکلونه ورکړې شو د وینا طاقت نې ورکړو اود هغوی نه وعده واخستې شوه او په دې وعده باندې نې زمکه اوآسمان گواه جوړکړل. آدمﷺ هم گواه جوړشو گنې د قیامت په ورځ خو هغوی صفاانکارکولو. خبر شئ چه د الله تعالی نه علاوه بل څوك رب نشته. څوك زما شریك مه جوړوئ. زه به تاسو له پیغمبران درلیږم د دې د پاره چه هغوی تاسو ته دا وعده یادوی او زه به کتابونه درلیږم نو روحونو اووئیل چه ستا نه سوا زمونږ بل څوك رب نشته، د الله تعالی د تابعدارئ اقرار نې اوکړو. حضرت آدمﷺ د هغوی په وړاندې راوستلې شو آدمﷺ اوکتل چه هغوی کښې غنیان هم شته او فقیران هم، بناسته هم شته او بدرنگه هم، عرض نې اوکړو اې ربه! دا ټول دې یو شان برابر ولې پیدا نه کړل؟ نو اووئیلې شو چه زما دا خوښه وه چه اوگورم څوك شکر کونکی دی او څوك صبر کونکی دی. كه دا ټول یو شان وو نودا امتحان به څنگه کیدې شو؟ په دې خلقو کښې انبیاء کرام لکه د نور نه ډك چراغونه وو. دا رسالت او نبوت دویم میثاق وو چه د الله تعالی د توحید نه پس د رسالت اقرار هم اوکړنی. الله تعالی فرمانی چه مونږ د انبیاء کرامو نه هم میثاق اخستې دې او هغه داچه د دین حنیف د خورولو د پاره به کلکه اراده کوئې کوم چه یو فطری دین دې.ددې گواهئ نه مقصددا وو چه انسان د توحید په فطرت باندې پیدا شوې دې. د دې د پاره ﴿مِنۢ بَنِيٓ ءَادَمَ﴾ اووئیلې شو نه چه ﴿مِنْ اٰدَمَ﴾ یعنی نه صرف آدمﷺ بلکه د هغه ټول اولاد د توحید په فطرت باندې پیداشوې دې. اوهم د دې د پاره ﴿مِن ظُهُورِهِمْ﴾ اووئیلې شو نه چه ﴿مِن ظَهْرِهِ﴾ یعنی ټول بنیادم د نسلونونه یونسل نه پس بل نسل. لکه چه اوفرمائیلې شو هغه تاسو فرداً فرداً په زمکه کښې خلیفه گان جوړکړنی او اوفرمائیلې شو لکه څنگه چه مونږ تاسو پیدا کړنی د نورو قومونود اولاد نه او پخپله تاسو خپل گواهان جوړشونی نو هله خو مو گواهی ورکړه چه اوته زمونږ رب یې. یعنی حالاً او قولاً په دواړه قسمه هغه معترف وو خکه چه گواهی کله دقول په ذریعه وی لکه چه ارشاد دې﴿قَالُوا شَهِدْنَا عَلَىٰٓ أَنفُسِنَا﴾ او کله دحال په ذریعه وی لکه چه ارشاد دې ﴿مَا كَانَ لِلْمُشْرِكِينَ أَن يَعْمُرُوا مَسَٰجِدَ ٱللَّهِ شَٰهِدِينَ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِم بِٱلْكُفْرِ﴾ یعنی د مشرکانو هیڅ حق نشته چه دالله تعالی جماتونه آبادکړی هم په خپل ذات باندې د کفر گواهی ورکولو

---

[1]) ددې په سند کښې جعفر بن زبیرمتروك راوی دې. المیزان: ۱/۴۰۶،رقم: ۱۵۰۲.

سره یعني د هغوی حال د هغوی دکفر گواه دي. دا گواهي دقول گواهي نه ده دحال گواهي ده. او سوال کله د قال په ذریعه وی اوکله دحال په ذریعه وی. لکه چه د الله ﷻ ارشاد دي﴿وَاٰتٰىكُمْ مِّنْ كُلِّ مَا سَاَلْتُمُوْهُ﴾ یعنی چه تاسو څه اوغوښتل الله تعالی درکړل. واني چه په دې خبره دا هم دلیل دې چه د هغوی په شرك کولوباندې دا حجت د هغوی خلاف پیش کیږی نوکه دا په حقیقت کښې شوې وې لکه څنګه چه یوقول دې نو پکار وه چه هریو ته یاد وو دې د پاره چه په هغه حجت وو. که د دې جواب دا وی چه د حضور ﷺ د فرمان نه خبر اخستل کافي وو نود دې جواب دا دې چه څوك رسولان نه مني هغوی به د رسولانو ورکړې شوې خبرې چرته اومني. حالانکه قرآن پاك پخپله د رسولانود تکذیب نه علاوه دا گواهي مستقل دلیل گرځولې دې نود دې نه هم دغه ثابتیږی چه د دې نه مراد هم د الله تعالی فطرت دې په کوم چه الله تعالی ټول مخلوق پیدا کړې دې او هغه فطرت د الله تعالی توحید دې د دې د پاره فرمانی چه چرته تاسو دا اونه وائې چه مونږ ته خود دې توحید هډو علم نه وو اودا چه شرك خو زمونږ پلارانو نیکونوکړې وو نود هغوی په شروع کړې شوو کارونوباندې مونږ ته ولې سزا راکوئې.

وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَاَ الَّذِيْٓ اٰتَيْنٰهُ اٰيٰتِنَا

اواولوله | په دوئ باندې | خبر | دهغه سړی | چې ورکړې وۈ مونږ هغه ته | علم د ایتونوزمونږه

او(اې پیغمبره ﷺ)دوئ ته دهغه خلقو قیصې اووایه چې مونږ ورته خپل ایتونه ورکړل

فَانْسَلَخَ مِنْهَا فَاَتْبَعَهُ الشَّيْطٰنُ فَكَانَ مِنَ الْغٰوِيْنَ ۝

پس رااووتلو هغه | دهغې نه | نو وریسې شو | شیطان | پس شو | دګمراهانونه

نوهغه ترې نه خان راښکلو | نوشیطان وریسې شو | او په ګمراهانو کښې شامل شو

وَلَوْ شِئْنَا لَرَفَعْنٰهُ بِهَا وَلٰكِنَّهٗٓ اَخْلَدَ

اوکه غوښتلي مونږه | خامخابه پورته کړې وۈمونږ هغه | په هغې ایتونو سره | خو لیکن هغه همیشه والي اوکړو

اوکه مونږ غوښتلې وې | نو د هغه مرتبه به موږ په دې ایاتو اوچته کړې وه | خو هغه خپله

اِلَى الْاَرْضِ وَاتَّبَعَ هَوٰىهُ ۚ فَمَثَلُهٗ كَمَثَلِ الْكَلْبِ ۚ اِنْ

زمکې ته | اوپیروی ئې اوکړه | دخواهش خپل | نو مثال دهغه | پشان دمثال | د سپي دې | که ته

زمکې طرفته ښکته شو | او د خواهش تابعداری ئې اوکړه | نو دهغه حال لکه دسپي شو | که

تَحْمِلْ عَلَيْهِ يَلْهَثْ اَوْ تَتْرُكْهُ يَلْهَثْ ؕ ذٰلِكَ مَثَلُ الْقَوْمِ

حمله اوکړې | په هغه | نوژبه رااوباسي هغه | یا که ته پریږدې هغه | نوهم ژبه رااوباسي | دا مثال دقوم

که ته ئې اوزغلوې نو هم ژبه راوباسي | اوکه په قلار ئې پریږدې نو هم ژبه راوباسي | دامثال دهغه ډلي دې

الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا ۚ فَاقْصُصِ الْقَصَصَ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُوْنَ ۝

هغه دې | چې دروغ ئې اوګڼرل | ایتونه زمونږه | پس بیان کړه | دا قیصې | دپاره ددې چې هغوئ | غوراو فکراوکړی

چې زمونږ ایتونه ئې دروغ ګڼړلي دي | نه دوئ ته داقیصې واوروه | کیدې شي چې دوئ سوچ اوفکر اوکړي

سَآءَ مَثَلَا الْقَوْمُ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَاَنْفُسَهُمْ كَانُوْا

بددې | مثال | دقوم | هغه | چې دروغ ئې اوګڼرل | ایتونه زمونږه | اوپه خانونو خپلو | دې هغوئ

دهغه قوم مثال ډیرخراب دې چې زمونږ ایاتونه ئې دروغ ګڼرلي دي | اوهغوئ دوراندې نه په خپلو

| يَظۡلِمُونَ﴿١٧٧﴾ |
|---|
| چې ظلم کوی! |
| خانونو زیاتې کولو ا |

قوله تعالی:: فَمَثَلُهُ كَمَثَلِ الْكَلْبِ

**د دنیا د طلب کونکی حال دسپی په شان دی**:- بنی اسرائیلوکښې یو سړی وو بلعم[1] بن باعورا نوم او اهل بلقاء نه وو.هغه اسم اعظم پیژندلو.د یهودیانو علماؤ سره به بیت المقدس کښې اوسیدلو. حضرت ابن عباس ﷺ وائی چه هغه د اهل یمن نه وو. الله تعالی هغه ته خپلې نبي اوکرامتونه ورکړی وو خو هغه ناقدری اوکړه([2]) هغه مستجاب الدعوات وو د هغه دعاګانې به قبلیدلې. خلقو به د مصیبت په وخت کښې دالله تعالی نه ددعا غوښتلو دپاره هم دې ورانديې کولو.د الله تعالی پیغمبر حضرت موسی ﷺ دې د تبلیغ د پاره د مدین ملك ته اولیګلو. د دې خاۍ بادشاه هغه خپل جوړکړو او په ده باندې نی ډیرې پرزونې اوکړې. هغه د دې بادشاه دین قبول کړو اود موسی ﷺ دین نی پریخودو. د هغه نوم بلعام وو اودا هم وئیلې شوی دی چه دې امیه بن ابی صلت دې ممکن دی چه د دې وینا نه دا مراد وی چه دا امیه هم د هغه په شان وو او ده ته هم د وړاندینو شریعتونو علم وو خو هغه د دې نه فائده نه وه اوچته کړې. د حضور ﷺ په زمانه کښې هم هغه وو د هغوی ﷺ آیات بینات نی کتلې وو، معجزې نی په خپلو سترګو اوکتلې،د الله تعالی په دین کښې داخلیدونکی نی په زرګونو کتلې وو خو مشرکانو سره تګ راتګ د هغه جدا حیثیت اود هغه خاۍ سرداری هغه د اسلام او حق قبلولو نه منع کړو. هغه د بدردکافرانو په ماتم کښې ډیرې مرثیې وئیلی دی. دهغه ژبې خو ایمان راوړلې وو خو زړه نی مؤمن شوې نه وو. دا ټول بیان ممکن دې چه د امیه بن ابی صلت متعلق وی نه بلعام **بلعام الله تعالی د دریو دعاګانو حق ورکړې وو**::د بلعام ذکر په قرآن کښې کیږی چه مونږ هغه ته خپل آیاتونه یعنی کرامتونه وربښلې وو خوهغه د دې نه اخوا شو یعنی د دې نه محروم شو. الله تعالی هغه ته د دریو دعاګانوحق ورکړې وو چه قبلیږی به. د هغه یوه ښځه او یو خوئ وو. د هغه ښځې وئیل چه یوه دعا زما د پاره خاص اوکړه هغه وئیل چه ښه ده وایه څه دعا ده. ښځې وئیل دعا اوکړه چه په ټولو بنی اسرائیلوکښې زمانه زیاته ښائسته ښځه بله څوك نه وی. هغه الله تعالی ته دعا اوکړه او هغه د ټولو نه ښائسته ښځه جوړه شوه. کله چه ښځې دامحسوسه کړه چه دهغې نه بله ښائسته ښځه نشته نود خاوند نه بې پرواه او بې رغبته شوه اود هغې خیالات او اعمال څه بل شان شو نو بلعام دعا اوکړه چه هغه دې سپنی شی نوهغه سپنی شوه. دوه دعاګانې ختمې شوې نودهغه خوئ راغلو وئیل چه مونږ خودا نه شو لیدلې چه زمونږ مور دې سپنی وی خلق مونږ ته شرم (پیغور) راکوی دعا اوکړه چه هغه په خپل حال باندې شی نو دعا نی اوکړه او هغه ښځه چه اول څنګه وه نو هم هغه شان شوه. دریواړه دعاګانې ختمې شوې. داروایت غریب دې. ددې آیت د نزول سبب کوم چه مشهور دې هغه دا دې چه د بنی اسرائیلو په زمانه کښې یوسړې وو هغه د جبارینو یهودو د ښار اوسیدونکې وو. اسم اعظم ورته یادوو وئیلې شو چه دهغه دعا د الله تعالی طرف نه قبلولې شی او د ټولو نه ډیره لرې او عجیبه خبره دا ده چه بعضې خلق وائی چه هغه نبی وو خودهغه نبوت واپس واخستې شو. د ابن جریر ﷺ هم ذاسې قول دې خودا مطلقًا صحیح نه دې. ابن عباس ﷺ فرمائی چه کله موسی ﷺ ښار جبارین ته راغلو نو بلعام ته د هغه خلق راغله او ونی وئیل چه موسی ﷺ یو مضبوط سړې دې هغه سره ډیر فوځ دې که

[1]) حاکم:۳۲۵/۲، مختصراً جدًا وسنده قوی.
[2]) الطبری: ۳۶۰۱/۱۳.

هغه په مونږ باندې غالب شو نو ټول به مړه کړی. د الله تعالی نه دعا اوغواړه چه دا د موسی ﷺ مصیبت زمونږ نه لرې شی. هغه ونیل چه که چرې زه داسې دعا اوکړم نو زما دین اودنیا دواړه به تباه شی خو خلقو هغه تنګولو نو هغه هم داسې دعا اوکړه نوالله تعالی د هغه نه بزرګی او ټول کرامتونه واپس واخستل. ارشاد دی ﴿فَانْسَلَخَ مِنْهَا فَأَتْبَعَهُ الشَّيْطٰنُ﴾ یعنی هغه د کراموتونونه محروم کړې شو هم د دې ځائ نه شیطان هغه پسې اولګیدو. سدی ﷫ وائی چه کله د موسی د پاره د میدان تیه څلویښت کاله ګردش ختم شو نو الله تعالی یوشع بن نون نبی راولیګلو. هغه بنی اسرائیلو ته د نبی کیدو خبرورکړو او دا چه الله تعالی هغه ته حکم ورکړو چه جبارینو سره جنګ اوکړه جبارینو د یوشع په لاس بیعت اوکړو او تصدیق نی اوکړو. خود بنی اسرانیلو یو سړې بلعام نافرمانی اوکړه او جبارینو له لاړو او هغوی ته نی اوونیل چه تاسو مه ویریږئ کله چه تاسو د جنګ د پاره اوځئ نو زه به د خپلې بد دعا د وسلې نه کار اخلم او هغوی به ټول هلاك شی. او بلعم جبارینو سره د هغوی دنیاوی سامان کښې هر څه چه موجود وو په هغه کښې شریك ووبغیرددې نه چه هغه د دوی ښځو نه څه فائده نه شوه اوچتولې ځکه چه د دغه ښځو عزت په هغه باندې راخورشوې وو هغوی به صرف خپلې خرې سره تعلق ساتلو. شیطان هغه پسې اولګیدلو یعنی په هغه باندې خورشو.اوس هغوی د شیطان حکم منلو﴿ فَكَانَ مِنَ الْغٰوِيْنَ﴾ یعنی د هلاك کړې شوو نه. نیکان خلق هم بعضې وخت بدان شی. حضور ﷺ اوفرمائیل مانه په تاسو باندې څه داسې اندیښنه شته لکه د هغه سړی چه د قرآن علم ئې لرلو د قرآن برکت او رونق د هغه په مخ باندې ښکاریدلو اسلامی شان ئې وو خود الله تعالی ورکړې شوې بدبختئ هغه راګیرکړو.د اسلام احکام هغه شاته اوغورزول. هغه په خپل ګاونډی باندې توره راوویستله. دې الزام لګولوسره هغه شرك اوکړو. د حضور ﷺ نه تپوس اوشو چه په دې دواړو کښې کوم یو زیات لائق دې په شرك سره الزام لګونکی که الزام کړې شوی؟ حضور ﷺ اوفرمائیل خطاکار الزام لګونکې وو.([1])

د الله تعالی ارشاد دې که مونږ غوښتې نود دنیاپرستئ د ګندګئ نه به مو هغه اوچت ساتلې وو اوچه کوم کرامتونه مو هغه ته ورکړې وو د هغې نه به مو هغه نه محروم کولو خو هغه د دنیا زینت طرف ته مائل شو اوپه دنیاکښې داسې اونختولکه څنګه چه نور ناپوهه خلق ﴿وَلٰكِنَّهٗۤ اَخْلَدَ اِلَى الْاَرْضِ﴾ اوهغه د شیطان هم کار جوړشو. یو ځل شیطان ورته رابنکاره شو نو دده سورلئ خرې الله تعالی ته سجده اوکړه خو بلعام شیطان ته سجده اوکړه. د ابن سیار نه د دې آیت تفسیراودهغه سړی خبر واوروه چا ته چه مونږ کرامتونه ورکړې وو د دې باره کښې روایت دې چه موسی ﷺ بنی اسرائیل واخستل او د دغه زمکې طرف ته نې مخاوکړه په کومه کښې چه بلعام اوسیدلو یا د شام طرف ئې مخ کړو. د موسی ﷺ د فوج لیګلو سره د هغه ځائ خلق اوویریدل او بلعام له راغلل اوونی ونیل چه د موسی ﷺ اود هغه د لښکرد پاره بددعااوکړه. نو هغه اوونیل چه صبر اوکړئ زه رب سره مشوره کوم. نو هغه مشوره اوکړه یا استخاره نی اوکړه نو هغه ته اوونیلې شو چه نه بددعا مه کوه ځکه چه هغه زما بندیګان دې او په هغوی کښې زما نبی هم دې.هغه قوم ته اوونیل چه ما رب سره مشوره اوکړه خو زه ئې د بددعا کولونه منع کړې یم. نو خلقو هغه له ډیر هدیې اوتحفې راوړلې. پکار وه چه هغه نه وې قبولې کړې خو هغه قبولې کړې. دې نه پس دې خلقو بیا هغه مجبوره کړو هغه ونیل چه ښه بیا مشوره کوم نو دې ځل هغه ته څه مشوره ملاو نه شوه. هغه اوونیل چه ماته خو څه مشوره رانه کړې شوه. په دې وجه به بددعا نه کوم خوخلقو دهوکه کړو او ورته نی اوونیل چه که الله تعالی ته منظور نه وه نو د اول ځل په شان به نې منع کړې وې. چه اوس الله تعالی خاموش دې نو دا تاته د بددعا اجازت دې.

---

[1] التاریخ الکبیر: ۳۰۱/٤، ۲۹۰۷ وهوحدیث حسن، المطالب العالیه: ۲۷۳/٤ ،مسندالبزار: ۹۹/۱.

**د الله ﷻ په حکم دبلعم د خپلې خولې نه دخپل قوم په خلاف بد دعا شروع شوه::** هغه دهوکه اوخوړله اود موسی ﷺ اودهغه دلښکردپاره ئې بددعا اوکړه. کله چه به هغه د موسی ﷺ ددې پاره د بددعا کلمه راویستل غوښتل نو هم د خپل قوم د پاره به ئې د بددعا الفاظ د خلې نه راوتل اوچه د خپل قوم د فتحې الفاظ به ئې وئیل نو د موسی ﷺ د پاره به د فتحې الفاظ د خلې نه راوتل. اویا به د ان شاء الله جمله هم د خلې نه راوتله. د کوم په سبب چه به دعا مشروط کیدلو په سبب عبث جوړیدله. خلقو وئیل چه ته خودموسی ﷺ دبددعا په ځائ هم زمونږ په حق کښې بددعا کوې هغه اوړئیل زه څه اوکړم زمادخلې نه بې اختیاره داسې څه راوځی. زه گمان کوم چه که زه بددعا هم اوکړم نو قبلیږی به نه.

**د بلعم د قوم یو هدایت::** اوس زه تاسو ته یو چل ښایم کوم سره چه به دا خلق هلاك شی. گورئی الله تعالی زنا حرام کړې او د زنا فعل نه سخت ناراض دې که چرې دا خلق په زناکښې اخته کړې شی نو یقیناً د دوی د هلاکت امیدشته. داسې اوکړئی چه د دوی فوځ ته خپلې ښځې ورواولیگی. دوی خو ښځې او بچې پریخی دی او مسافر خلق دی څه عجیبه ده چه په زنا کښې اخته شی اوهلاك شی. دې خلقو هم داسې اوکړل اوښځې ئې د موسی ﷺ فوځ ته وراولیگلې. تر دې چه د بادشاه لورئی هم پرینخوده. شهزادگئی ته دهغې پلار یا بلعام تاکید کړې وو چه دموسی ﷺ نه بغیر د چا په تصرف کښې مه راځه. وائی چه واقعی خلق په زناکښې اخته شو. شهزادگئی له دبنی اسرائیلو یو سردار راغلو اود هغې نه ئې فائده اوچتول غوښتل هغې وئیل چه د موسی ﷺ نه بغیربه زه څوك هم نه پریږدم. سردار اووئیل چه زما داسې اوچته عهده ده اوزما داسې شان اوشوکت دې نو جینئی خپل پلار ته خط اولیکه اویه دې باره کښې د هغه هدایات اوغوښتل نو هغې ته اووئیلې شو چه او اومنه. هغه دواړه چه کله په کارکښې اخته شو نو هلته د بنی هارون ﷺ نه یو کس راغلو د هغه په لاس کښې یوه نیزه وه داسې ئې اووهل چه دواړه په خپل موجوده حالت کښې هم په یوه نیزه کښې اوپیللې شو. هغه نیزه اوچته کړه اود خلقو مخې ته راغلو او خلق کتونکی پاتې شو. الله تعالی په هغوی باندې د طاعون مرض راولیگلو کوم نه چه اویازره کسان مړه شو. د ابن سیار بیان دې چه بلعام په خپله خره سور شو او علولی ته راغلو. د دې ځائ نه د هغه سورلی وړاندې نه تله. هغه به دا وهله او هغه به کیناستله. الله تعالی هغې ته ژبه ورکړه او وئې وئیل چه ما ولې وهې وړاندې اوگوره څه دی؟ چه وئې کتل نو هلته شیطان ولاړو او هغه شیطان ته سجده اوکړه. د دې د پاره الله تعالی اوفرمائیل ﴿فَانْسَلَخَ مِنْهَا﴾ سالم ابوالنضر وائی چه کله موسی ﷺ د شام د زمکې نه بنی کنعان ته راغلو نود بلعام قوم راغلو او هغه ته ئې اووئیل چه موسی ﷺ خپل قوم سره زمونږ ملك ته راغلې دې. دې د پاره چه مونږ قتل کړی او هغوی دلته اوسوی. مونږ ستا قوم یو زمونږ به هیڅ ځائ پاتې نه شی ته خو مستجاب الدعوات یئې د الله تعالی نه د هغوی د پاره بددعا اوغواړه هغه اووئیل ستاسو کم بختی ده. موسی ﷺ د الله تعالی نبی دې. د هغه امداد فرښتې هم کوی او مؤمنان هم. زه څنگه بددعا اوکړم. زه چه څه پیژنم هغه زه پیژنم. خلقو اووئیل چه مونږ به اوسیږو کوم ځائ او هروخت به ئې په ده باندې دباؤ اچولو او عاجزی به ئې کوله تر دې چه هغه خلقو دې په فتنه کښې واچولو. هغه په خپله خره باندې سور شو او یوغرته لاړو د کوم په ختو چه ئې د بنی اسرائیلو لښکر لیدو هم دې ته جبل حسبان وائی. لږ شان لږې تلې وو چه د هغه سورلی کیناسته ورکوز شو او هغه ئې اووهله. لږ شان لږې تلوباندې هغه بیا کیناسته. چه کله ئې بار بار هغه وهله نو الله تعالی هغې ته ژبه ورکړه او هغې وئیل چه بلعما ته ما چرته بوتلل غواړې ته نه گورې چه فرښتې زما مخې ته دی ما دیکه کوی او روستو طرف ته مې واپس کوی. ته د الله تعالی د نبی اومؤمنانو د بددعا دپاره ځې خو هغه منع نه شو او بیا ئې هغه اووهله. اوس هغه د الله تعالی په حکم باندې د حسبان په څوکه باندې اوختله. هغه هلته په رسیدو باندې موسی ﷺ او مسلمانانو ته

بددعاکوله خودهغه ژبه به اولتړه شوه او بددعابه ني خپل قوم د پاره او دعا د موسى عليه السلام د پاره د
خولې نه راوتله.واني چه بددعاکولو باندې د هغه ژبه بهر راووتله اودهغه په سينه باندې اوږده
زوړندشوه.اوس هغه شروع شو چه زما دين هم لاړو او دنيا هم. قوم ته ني اوونيل چه اوس خو صرف به
مکروه حيلې او بهانې نه کاراخستې شي. د خپلو جينکو سنګارونه اوکړئي د بني اسرائيلو فوځ ته ني
وراوليګئي. هغوی ته اووينې چه سړی خپل طرف ته مائل کړئي.که يو سړی هم زنا اوکړه نو تاسو
پوهه شئ چه ستاسو مقصد پوره شو نو ښځې د بني اسرائيلو لښکر ته اورسيدلې.

**بل روايت متعلق ددې واقعې سره::**د اهل کنعان يوه ښځه چه دهغې نوم کسبتی وو د صورلور وه چه د
قوم بادشاه او سردار وو. دا ښځه د بني اسرائيلو يو سردار سره ملاؤ شوه د کوم نوم چه زمري بن شلوم
ووچه د شمعون بن يعقوب بن اسحاق بن ابراهيم نمسې وو اوسردار وو.هغه چه دا ښځه اوليده نو
خوښه ئې شوه د هغې لاس ني اونيولو او موسى عليه السلام له ني بوتله او موسى عليه السلام ته ني اوونيل چه ته خو
به هم دا وائې دا په تا حرامه ده. دې ته مه نيزدې کيږه. موسى عليه السلام اوفرمائيل چه اودا په تاحرامه ده.
هغه اوونيل اې موسى عليه السلام! والله زه به دلته ستا خبره واونرم. بيا ئې دا جينئى خپلې خيمې ته بوتله او
ورسره هم بستر شو. الله تعالى بني اسرائيلوکښې طاعون راوليګلو. د موسى عليه السلام د قوم سرداران
فخاص ابن عيزاربن هارون نامی، د زمري بن شلوم د دې حرکت په وخت کښې هلته موجود نه وو او
په دې حرکت کښې په ټول قوم کښې طاعون راخورشو. دا ټوله واقعه فخاص ته معلومه شوه نو هغه
خپله د اوسپنې نيزه راوچته کړه اود زمري په خيمه کښې داخل شو هغه دواړه ملاست وو نو دواړه ني
په يوه نيزه کښې وراوپيلل او هغه نيزه ني په سر اوچته کړه او بهر راووتلو. فخاص خوان وو او طاقتور
وو هغه بوج ني اوچت کړو او وئيل به ني اې الله! مونږ ستا دنافرمانوسره داسې کوو اوس دا طاعون
ختم کړې نو طاعون ختم شو. د طاعونه هلاك شوې بني اسرائيل په دې موده کښې چه کله هغوی ښځه
حاصله کړه او بيا د فخاص په لاس قتل شواويازره کسان مړه شو يا کم نه کم شل زره. د فخاص په دې
شکر ګذارئى کښې بني اسرائيلو چه به کله حلاله کوله نو د خناور پښې سر اود خپل ميوو او مالونو
ړومبې څيز به ني د فخاص اولاد ته د نذرانې په توګه ورکولو.

**د ايت مبارک په تفسير کښې اقوال::**ددې آيت په تفسير کښې اختلافات دی. چه د ده مثال د سپی به
شان دې که په ده باندې بوج واچوی نو هم ني ژبه راويستلې وی او غاپی اوکه پريږدې نو بيا هم غاپی
واني چه د بلعام ژبه هم رازوړندشوې وه او په سينه ني پرته وه. نود هغه تشبيه هم داسې سپی سره
ورکړې شوې ده چه په دواړوحالتونوکښې يو شان وی چه په ده باندې کرامتونه او رحمتونه نازل کړه نو
په هرو دواړو حالاتوکښې يوشان دې. يا دا مثال د هغه په ګمراهئى يا د ګمراهئى په تائيد کښې اود
ايمان طرف ته په رابللو يا نه رابللو دواړو حالتونوکښې د دې نه نفع نه حاصلول د هغه سپی په شان
دې چه چغه کولو اونه چغه کولو دواړو صورتونوکښې ژبه زوړندکړې غاپی. دغه شان دا بلعام هم د
ايمان طرف ته رابللونه فائده نه اوچتوی او د نه رابللونه هم. دغه شان يوه بله خبره الله تعالى يوبل ځائ
کښې ارشاد فرمائيلې ده چه که غواړې او ته دوی اوويروی اوکه اونه وئی نه ويروې ايمان نه راوړی
(١) يايو بل مثال چه که ته د دوی د پاره استغفار اوکړې اوکه نه الله تعالى به دوی نه ښئى(٢)يا دا
معنى هم کيدې شی چه د کافر منافق او ګمراه زړه کمزورې او د هدايت نه فارغ وی که څومره هم
کوشش اوکړې شی هدايت نه قبلوی.

---

(١) ٢/البقره: ٦.
(٢) ٩/التوبة: ٨٠.

**دداسې واقعاتو په اورولو کښې دالله ﷻ حکمت**::الله تعالی خپل نبی محمد ﷺ ته فرمائي چه خلقو ته دا واقعات واوروه چه د بنی اسرائیلود حالاتو خبریدلو نه پس غور او فکر اوکړی اود الله تعالی په لار راشي او داسوچ اوکړی چه د بلعام څه حال اوشو.د رب د علم غونډې زبردست دولت هغه د دنیا په سفلی راحت باندې بانیللو او آخر نه دا ملاؤ شو او نه هغه. دغه شان دا د یهودو علماء چه په خپلو کتابونوکښې د الله تعالی هدایت لولی اوستا اوصاف په دې کښې لیکلی ګوری دوی له پکار دی چه د دنیا په طمع کښې اینختلو سره،او په غفلت کښې پرینوخی ګنی دوی به هم دغه شان د دین او دنیا دواړو نه ورك کړې شی. دوی له پکار دی چه د خپل علمیت نه فائده اوچته کړی اوستا د طاعت طرف ته تیټ شی او په نورو باندې هم حق خبره واضح او ښکاره کړی. ګوره د دې کافرانو څومره خراب مثالونه دی چه د سپو په شان خوراك او شهوتونوکښې پراته دی. نو چه څوك هم علم او هدایت پریږ دی او د نفس خواهش پوره کولوکښې اخته شی نو هغه هم د سپی په شان دې. حضور ﷺ فرمائیلی چه خراب مثال په مونږ باندې صادق راتلل نه دی پکاریعنی چه چاته ورکړی بیا واپس اخلی د اخستونکی مثال د هغه سپی په شان دې چه قي اوکړی او بیا هغه اوخوری. (۱) او فرمائی چه هغوی په خپلو نفسونوپخپله ظلم کړې دې څکه چه د هدایت اتباع نی اونه کړه. په دنیا او د دنیا په خوند کښې اونختل، دا د الله تعالی ظلم نه دې.

| مَنْ | يَّهْدِ اللّٰهُ | فَهُوَ | الْمُهْتَدِيْ ج | وَمَنْ | يُّضْلِلْ |
|---|---|---|---|---|---|
| چاته | چې هدایت اوکړی الله | پس هغه | هدایت موندونکې دی | او هغه څوك | چې ګمراهه کړی |
| ا چاته چه الله ﷻ هدایت اوکړی ا نو هغه په نیغه لار روان شی ا اوخوك چې دهدایت نه محروم کړی | | | | | |
| فَاُولٰٓئِكَ | هُمُ | الْخٰسِرُوْنَ۝ | | | |
| نودغه کسان | هغوئ دی | نقصانیان | | | |
| نوهغه خلق تاوانیان دی | | | | | |

**هدایت اوګمراهی دالله تعالی په قبضه کښې** :- چاته چه الله تعالی هدایت اوکړی هغه څوك ګمراه کولې نه شی. اوچه څوك هغه ګمراه کړی د چا څه مجال چه هغه ته هدایت اوکړی. الله تعالی چه څه اوغوښتل هغه اوشو او چه څه نه غواړی نو هغه نه کیږی. په دې وجه په حدیث کښې دی چه ان الحمد لله نحمده ونستعینه ونستهدیه ونستغفره ونعوذ بالله من شرور انفسنا ومن سیئات اعمالنا من یهد الله فلا مضل له ومن یضلل فلا هادی له واشهد ان لا اله الا الله وحده لا شریك له واشهد ان محمدا عبده ورسوله) (عن ابن مسعود ﷺ)

ترجمه:- ټول تعریفونه هم د الله تعالی دپاره دی مونږ دهغه حمد بیانوو اوهم دهغه نه مدد غواړو اوهم د هغه نه هدایت غواړو اوهم دهغه نه ښښنه غواړو. مونږ د خپل نفس د شیطانانو نه د الله تعالی پناه غواړو اودخپلواعمالودبدئی نه هم.الله تعالی لارخودونکې څوك دهوکه کولې نه شی اودهغه ګمراه کړې شوې څوك په نیغه لارنه شی راوستې. زه ګواهی ورکوم چه د عبادت لائق صرف هم یو الله دې هغه یوازې دې د هغه څوك شریك نشته او ګواهی ورکوم چه محمد ﷺ د الله تعالی بنده او د هغه رسول دې.(۲)

---

(۱) صحیح بخاری کتاب الهبه باب لا یحل لاحد ان یرجع فی هبته وصدقته: ۲۶۲۲، ترمذی:۱۲۹۸،احمد:۱۲۷/۱، دې نه علاوه هم ذ دې معنې روایت صحیح بخاری:۲۵۸۹، ابن ماجه: ۲۳۸۵ کښې هم موجود دې.

(۲) ابوداؤد کتاب النکاح باب فی خطبه النکاح:۲۱۱۸، ترمذی:۱۱۰۵، نسائی:۳۲۸۹، ابن ماجه:۱۸۹۲، احمد:۱۴۳۲، بیهقی:۲۱۴/۳.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | | وَلَقَدْ | ذَرَأْنَا | لِجَهَنَّمَ |
| | | او خامخا په تحقیق | سره پیدا کړي دي مونږه | دپاره د دوزخ |
| او یقیني خبره ده چې مونږ د جهنم دپاره | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| كَثِيرًا | مِّنَ الْجِنِّ | وَالْإِنسِ | لَهُمْ | قُلُوبٌ لَّا يَفْقَهُونَ | بِهَا |
| ډیر کسان | د پیریانو نه | او د انسانانو نه | دي د هغوئ | زړونه \| چې نه پوهیږي | په هغې سره |
| ډیر پیریان او بني آدم پیدا کړي دي \| دهغوئ زړونه شته دې خو دپوهې کوشش پرې نه کوی | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَهُمْ | أَعْيُنٌ | لَّا يُبْصِرُونَ | بِهَا | وَلَهُمْ | آذَانٌ |
| او دي د هغوئ | سترګې | چې کتل نه کوی | په هغې سره | او دي د هغوئ | غوږونه |
| اودهغوئ سترګې شته خو کتل پرې نه کوی \| ......................او دهغوئ غوږونه شته خو | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لَّا يَسْمَعُونَ | بِهَا | أُولَٰئِكَ | كَالْأَنْعَامِ | بَلْ | هُمْ | أَضَلُّ |
| چې نه اوری | په هغې سره | دغه کسان | ایشان دخناورو دي | بلکه | هغوئ | ډیر ګمراهه دي |
| اوریدل پرې نه کوی \| ..............هغوئ دخاروو په شان دي \| بلکه دهغوئ نه هم بدتر دي | | | | | | |

| | | |
|---|---|---|
| أُولَٰئِكَ | هُمُ | الْغَافِلُونَ ﴿۱۷۹﴾ |
| دغه کسان چې دي | هم هغوئ | غافلان دي |
| نوهم دغه کسان (دحق نه) غافلان دي \| | | |

**قوله تعالی: لَهُمْ قُلُوبٌ لَّا يَفْقَهُونَ بِهَا**

د زړه سترګې غوږونه وغیره دَ بدن اندامونه صحیح نه استعمال کونکي څناور دي:- حضورﷺ: یو انصاری د خوئ په جنازه کښې د تلو اتفاق اوشو. حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي ما رسول اللهﷺ نه اوونیل اې رسول اللهﷺ دا ماشوم خود جنت یوه مرغئ ده. نه خو ده څه خراب کارونه کړی اونه دوزخ د ده ځای دې، نو حضورﷺ اوفرمائیل اې عائشه رضي الله عنها، اوس زمانه هم څه واوره چه الله تعالی جنت پیداکړو او هغه خلق ئې هم پیدا کړل چه اهل جنت به وی. اودا د جنت حقداران په هغه ورځ اوګرځولې شو چه په هغه وخت کښې د آدم په شاکښې وو او دوزخ او دوزخیان ئې هم پیدا کړل په هغه وخت کښې چه هم د آدم عليه السلام په شا کښې وو. [1]

د ابن مسعود رضي الله عنه نه روایت دې چه الله تعالی د مور رحم ته یوه فرښته لیګی چه دهغه متعلق څلور خبرې لیکی. د هغه رزق، د هغه عمر، د هغه اعمال نیك یا بد. [2] اودا خبره اول بیان شوه چه د آدم عليه السلام شانه کله الله تعالی اولاد رااوویستلو نو اصحاب یمین او اصحاب شمال دوه ډلې ئې جوړې کړې یوه د جنت د پاره او بله د دوزخ د پاره. اوفرمائیلي شو چه ماته د دې څه پرواه نشته چه څوك خپل ځان د جنت مستحق جوړوی که د دوزخ. په دې باره کښې په کثرت سره احادیث وارد دي اود تقدیر مسئله

[1] صحیح مسلم کتاب القدر باب معنی کل مولود یولدعلی الفطرة: ۲۶۶۲، ابوداؤد:۴۷۱۳، ابن ماجه:۸۲، مسندابی یعلی:۴۵۵۳، احمد:۴۱/۶، ابن حبان:۱۳۸.

[2] صحیح بخاری کتاب بدء الخلق باب ذکر الملائکة: ۳۲۰۸، صحیح مسلم:۲۶۴۳، ابوداؤد:۴۷۰۸، ترمذی:۲۱۳۷، ابن ماجه:۷۶، احمد:۳۸۲/۱، ابن حبان:۶۱۷۴.

يوه اهمه مسئله دلته ده دنور وضاحت گنجائش نشته.ارشاددې چه دهغوی زړونه خوشته ولې پوهيدلې نه شي. سترګې ئې شته خو ليدلې نه شي،غوږونه ئې شته خو اوريدلې نه شي. دا څيزونه کوم چه د هدايت حاصلولو د پاره سبب جوړکړې وو دې نه هيڅ فائده نه اخلي. لکه چه فرمائي دوی ته غوږونه سترګې او زړه ورکړې شوې دي خو د دې نه دوی ته هيڅ فائده نه رسي. څکه چه د دې څيزونونه دوی کار نه دې اخستې اوهم د الله تعالی د اياتونوانکارئې کړې. دمنافقانو په حق کښې الله تعالی فرمائيلي ﴿صُمٌّ بُكۡمٌ عُمۡيٌ فَهُمۡ لَا يَرۡجِعُونَ﴾(١) اود کافرانو په حق کښې دی ﴿صُمٌّ بُكۡمٌ عُمۡيٌ فَهُمۡ لَا يَعۡقِلُونَ﴾(٢) او فرمائي چه که الله تعالی په بدنونوکښې څه خير معلومولو نو خامخا به ئې دا د اوريدلو قابل جوړول او هدايت به ئې موندلو. اوفرمائي چه سترګې ړندې نه وی بلکه زړونه ړانده دی. اوفرمائي چه چا د رحمن د وحې نه مخ واړولو نو په هغه باندې شيطان مسلط کيږی او هر وخت هغه پورې اينختې وی. دا خلق د الله تعالی د لار نه خلق منع کوی او دا ګمان کوی چه هم دغه صحيح لار ده. اوس دلته دا ارشاد کيږی چه دا خلق په مثال دخناورو دی چه نه حق خبره اوری او نه د حق امداد کوی او نه هدايت ته ګوری. اود خپلو پنځوخواسو نه هغوی هيڅ فائده نه اوچتوی سوا د دې نه چه څه د دنياوی ژوند فائدې اوچتې کړی لکه چه فرمائی د کافرانو مثال د هغه څناور په شان دې چه د شپونکی الفاظ خو نه پيژنی او صرف آواز ئې اوری. که دوی هم د ايمان طرف ته رابلې نو د هغې د فائدې نه خو خبرنه دی خو بيا هم آواز اوری او د دې د پاره اوفرمائيلې شو چه دوی د هغه څناورو نه هم ډير ذليل دی چه څناور خود خپل شپونکی خبره باندې نه پوهيږی خود هغه په رابللوباندې د هغه طرف ته مخ کوی. د دې د پاره چه د دې څناورو نه د نه پوهيدلو فطری او خلقی فعل کيږی نود طبيعت د پوهولو په بنا باندې په خلاف دکافر چه بغيرد چا د شرکت د الله تعالی د عبادت د پاره پيدا شوې وو خو هغه کفر او شرك اوکړو.نود دې د پاره چه چا د الله تعالی اطاعت اوکړو هغه به د قيامت په ورځ د ملائکونه هم افضل وی او چا چه کفر اوکړو هغه څناور بلکه د دې نه هم بدتر دی.

| وَلِلّٰهِ | الۡاَسۡمَآءُ | الۡحُسۡنٰی |
|---|---|---|
| اووخاص الله لره دی | نومونه | ښهٔ |
| اود الله ﷻ دپاره ښهٔ ښهٔ نومونه دی | | |

| فَادۡعُوۡهُ | بِهَا | وَذَرُوا | الَّذِيۡنَ | يُلۡحِدُوۡنَ | فِيۡۤ اَسۡمَآئِهٖ |
|---|---|---|---|---|---|
| نوآوازکوئ هغه ته | په هغې سره | اوپريږدئ | هغه کسان | چې کوږوالي کوي | په نومونود هغه کښې |
| نو په هغې سره ئې رابلئ | اوهغه خلق پريږدئ چې دالله ﷻ نومونو کښې کوږوالي لټوی | | | | |

| سَيُجۡزَوۡنَ | مَا | كَانُوۡا | يَعۡمَلُوۡنَ |
|---|---|---|---|
| زربه بدله ورکړې شی هغوئ له | د هغې | چې وؤ هغوئ | چې کول به ئې |
| دوئ ته به دخپلو عملونو بدله ډيره زر ورکړې شی | | | |

**قوله تعالی: وَلِلّٰهِ الۡاَسۡمَآءُ الۡحُسۡنٰی فَادۡعُوۡهُ بِهَا**

**دالله تعالی داسماء حسنی تعداد او فضيلت**.- دحضرت ابوهريره ؓ نه روايت دې چه حضور ﷺ فرمائيلی د الله تعالی يوکم سل (۹۹) نومونه دی. څوك چه د دې يوکم سلونومونو وظيفه کوی هغه به جنت ته

(١) سورة البقرة : آيت:١٨
(٢) سورة البقرة : آيت ١٧١

خي.الله تعالی وتریعنی طاق دې په دې وجه په شمیر کښې هم وتریعنی طاق خوښوی[1] هغه پاك نومونه دا دي:

﴿هوالله الذي لااله الا هوالرحمن الرحيم الملك القدوس السلام المؤمن المهيمن العزيز الجبار المتكبر الخالق البارء المصور الغفار القهار الوهاب الرزاق الفتاح العليم القابض الباسط الخافض الرافع المعز المذل السميع البصير الحكم العدل اللطيف الخبير الحليم العظيم الغفور الشكور العلي الكبير الحفيظ المقيت الحسيب الجليل الكريم الرقيب المجيب الواسع الحكيم الودود المجيد الباعث الشهيد الحق الوكيل القوي المتين الولي الحميد المحصي المبدء المعيد المحي المميت الحي القيوم الواجد الماجد الواحد الاحد الفرد الصمد القادر المقتدر المقدم المؤخر الاول الاخر الظاهر الباطن الوالي المتعالي البر التوب المنتقم العفو الرؤف مالك الملك ذوالجلال والاكرام المقسط الجامع الغني المغني المانع الضار النافع النور الهادي البديع الباقي الوارث الرشيد الصبور﴾ ([2])

دا حدیث غریب دې اود څه کمی زیاتې سره دغه شان نومونه د ابن ماجه په حدیث کښې هم وارد دی. ([3]) د بعضې بزرګانو داخیال دې چه دا نومونه راویانو د قرآن کریم نه چهانړ کړی دی. والله اعلم. دا یاد ساتنی چه اسماء حسنٰی هم دغه یوکم سل (۹۹) نومونو کښې منحصر ندی ځکه چه په مسنداحمد کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی چه کله چاته غم او خفګان اورسی نو دا دعا دې وائی.

﴿اللهم اني عبدك ابن عبدك ابن امتك ناصيتي بيدك ماض في حكمك عدل في قضآؤك اسألك بكل اسم هولك سميت به نفسك اوانزلته في كتابك اوعلمته احدًا من خلقك اواستأثرت به في علم الغيب عندك ان تجعل القرآن العظيم ربيع قلبي ونور صدري وجلآء حزني وذهاب همي﴾ اوئیلې شو یارسول الله ﷺ آیا مونږ ئې یاد نه کړو. حضور ﷺ اوفرمائیل چه ځوك هم دا واوری نو یاد دې کړی([4]) بعضې خلقوخود قرآن اوسنت نه دالله تعالی زرنومونه راویستې دی. ارشادې دې چه هغه خلق پریږدئی چا چه د الله تعالی په نومونو کښې کږلیچ اختیارکړې دې چه دا کافران خلق د الله تعالی په نومونو کښې د "لات" لفظ هم شریك کوی او "لات" دالله تعالی مونث لفظ ښائی عزی دعزیز لفظ نه مشتق کوی. دادواړه نومونه کافرانو سره د مونث خدایانو دی. د الحاد معنی تکذیب ده اود عربو په کلام کښې د اعتدال نه اخوا کیدو ته وائی لحد په معنی د قبر هم د دې نه دې ځکه چه قبلې طرف ته مخ تاوولو سره ئې جوړوی.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَمِمَّنْ | | | | | |
| او ځینی دهغه چانه | | | | | |
| او زمونږ په | | | | | |
| خَلَقْنَآ | اُمَّةٌ | يَّهْدُوْنَ | بِالْحَقِّ | وَبِهٖ | يَعْدِلُوْنَ |
| چې پیدا کړی دی مونږه | یوه ډله ده | چې لار ښائی خلقو ته | مطابق دحق | اوهم ددې حق مطابق | انصاف کوی |
| مخلوق کښې یوه ډله داسې هم شته | | چې دحق مطابق(خلقوته)خودنه کوی | | اودحق مطابق انصاف کوی | |

**قوله تعالی:: وَمِمَّنْ خَلَقْنَآ اُمَّةٌ**

**یوه ډله بهٔ دقیامته پورې په حق ولاړه وی.** - زمونږ پیداکړې شوقومونو کښې بعضې قومونه قولاً عملاً په حق قائم دی حق وینا کوی او د حق طرف ته رابلل کوی اوهم د حق فیصله کوی. د دې امت نه مراد

[1] صحیح بخاری کتاب الدعوات باب لله مائه اسم غیرواحده: ٦٤١٠،صحیح مسلم:٢٦٧٧،ترمذی:٣٥٠٦،ابن ماجه:٣٨٦٠، احمد:٢٦٧/٢، ابن حبان:٨٠٧.

[2] ترمذی کتاب الدعوات باب حدیث فی اسماء الله الحسنی مع ذکر هاتماما: ٣٥٠٧.

[3] ابن ماجه کتاب الدعاء باب اسماء الله عزوجل:٣٨٦١.

[4] احمد:٣٩١/١وسندحسن، مسندابی یعلی:٥٢٩٧، حاکم:٥٠٩/١، ابن حبان:٩٧٢.

امت محمديه ﷺ دي. حضور ﷺ به چه کله دا ايت لوستلو نو فرمانيل به ني چه دا تاسو ني. او هغه قوم چه تاسو نه وړاندې تيرشوې يعني د موسی ﷺ قوم دې خلقو به هم خلق د حق طرف ته راغوښتل.[۱] حضور ﷺ فرمانيلي چه زما امت کښې به يوه ډله په حق قائمه وی تردې چه حضرت عيسی ﷺ به نازل شي [۲] او هم هغه ډله به په حق باندې غالبه وی. د هغوی څوك مخالف به هغوی ته څه نقصان نه شي رسولې. اود قيامت راتلوپورې يا د خپل مرګه پورې به په دې کلك ولاړ وی.[۳]

| وَالَّذِيْنَ | كَذَّبُوْا | بِاٰيٰتِنَا | سَنَسْتَدْرِجُهُمْ | مِّنْ حَيْثُ |
|---|---|---|---|---|
| اوهغه کسان | چې دروغ ني اوګڼړل | آيتونه زمونږه | درجه په درجه به اونيسو مونږ هغوئ | په داسې طريقه |
| اوچا چې زمونږ آيتونه دروغ ګڼړلی دی | | | ............. مونږ به ني په مزه مزه داسې راګيرکړو | |

| لَا يَعْلَمُوْنَ | وَاُمْلِيْ | لَهُمْ | اِنَّ كَيْدِيْ مَتِيْنٌ |
|---|---|---|---|
| چې نۀ به پوهيږی هغوئ | اوزۀ مهلت ورکوم | هغوئ ته | بيشکه تدبيرزما سخت دې |
| چې په خان به نه پوهيږی | اوزه هغوی ته مهلت ورکوم | | زما نيول ډيرسخت دی |

**قوله تعالي:: وَاُمْلِيْ لَهُمْ**

**درزق کثرت دَ عذاب ذريعه هم ده:-** د دې مطلب دا دې چه دهغوی دپاره به د رزق دروازې کولاويږی. دنياوی فائدې به نی زياتې شی. تردې چه هغوی به په دې دهوکه کښې پاتې شی اودا ګمان به کوی چه د هغوی به هميشه دا حال وی لکه چه فرمانی کله چه هغوی زمونږ ياد هيرکړو نو مونږ په هغوی باندې د رزق دروازې کولاوکړې او چه کله هغوی په غروراوتکبر کښې راغله نو ناڅاپی هغوی مونږ راګيرکړل او هغوی نااميده پاتې شو. د هغه ظالمانو نسل مو ختم کړو. د حمد او ثنا لائق خو هم رب العالمين دې.[۴] دې د پاره مونږ هغوی‌ته ډهيل ورکړو او زمونږ تدبير خو ډير قوی وی.

| اَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوْا |
|---|
| آيافکرنۀ دې کړې دې خلقو |
| آيا دوی چرې فکرنۀ دې کړې |

| مَا بِصَاحِبِهِمْ | مِّنْ جِنَّةٍ | اِنْ | هُوَ | اِلَّا | نَذِيْرٌ | مُّبِيْنٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې نشته په ملګری ددوئ باندې | هيڅ ليونتوب | نۀ دې | هغه | مګر | ويرونکې دې | ښکاره |
| چې د دوی په دې ملګری(پيغمبر) باندې دپيريانو هيڅ اثر نشته | | | | | هغه خو بس ښکاره ويرونکی دې | |

**قوله تعالي:: مَا بِصَاحِبِهِمْ مِّنْ جِنَّةٍ**

**نبی ﷺ مجنون نه دې بلکه دَ الله تعالی رښتونې رسول ﷺ دې:-** دې تکذيب کونکودا هم غوراونه کړو چه دهغوی ملګرې (حضرت محمد ﷺ) ته هيڅ جنون او ليونتوب نشته [۵] بلکه د الله تعالی رسول دې

---

[۱] احمد: ۲۹۱/۱ وسندحسن، مسندابی يعلی: ۵۲۹۷، حاکم: ۵۰۹/۱، ابن حبان: ۹۷۲.
[۲] الدرالمنثور: ۲۷۲/۳.
[۳] صحيح بخاری کتاب المناقب باب ۲۸، ۳۶۴۰، صحيح مسلم کتاب الامارة باب قوله ﷺ (لاتزال طائفة من امتی ظاهرين علی الحق...): ۱۹۲۰.
[۴] ۶/الانعام: ۴۴-۴۵.
[۵] ۸۱/التکوير: ۲۲.

او د حق طرف ته رابلل کوی. په کوم سړی کښې چه عقل سليم وی او د دې نه کار اخستل غواړی او هغه ته صفاصفا تنبيه ورکونکې دی او فرمائي چه زه تاسو ته د يوې خبرې نصيحت کوم چه د الله تعالى د عبادت او د دين د تبليغ د پاره يويو او دووه دووه راولاړ شئ بيا په دې خبره باندې ځه غور اوکړئ چه ستاسو ملګرې ته جنون نشته بلکه هغه خو د الله تعالى د سخت عذاب نه ويرونکې دې (۱) الله تعالى سره خلوص اختيار کړئ. تعصب او دښمنی پريږدئ که تاسو داسې اوکړئ نو تاسو ته به حقيقت ښکاره شی چه دا رسول رښتونې او خيرخواه دې.

**صفا غونډئي باندې درسول کريم ﷺ اعلان::** حضور ﷺ په صفا غرباندې اوختلو. قريش ئې راجمع کړل ديوې يوې قبيلې نوم ئې اخستلو سره راوغوښتل بيا ئې د الله تعالى د عذاب او واقع کيدونکو حادثاتونه ئې هغوی اوويرول نوبعضې بې وقوفانو اووئيل چه دا خو ځه ليونې غوندې معلوميږی. تر سحره پورې ئې بکواس کولو نو الله تعالى دا آيت نازل کړې وو.

| اَوَلَمْ يَنْظُرُوْا | فِيْ مَلَكُوْتِ | السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ | وَمَا |
|---|---|---|---|---|
| آيا اونۀ کړو نظر دوئ | په سلطنت | دآسمانونو کښې | اودزمکې کښې | او ځه |
| آيادوی دآسمانونو اوزمکې انتظام ته نۀ دی کتلی ...............او هغه | | | | |
| خَلَقَ اللّٰهُ | مِنْ شَيْءٍ | وَّاَنْ | عَسٰۤى | اَنْ يَّكُوْنَ |
| چې پيدا کړل الله | له هر ځيز نه | اودا(سوچ ئې اونۀ کړو) چې | کيدې شی | چې وی به |
| ځيز ته ئې نۀ دی کتلی چې الله ﷻ پيداکړې دی اودې ته ئې هم فکرنۀ دې کړې چې | | | | |
| قَدِ اقْتَرَبَ | اَجَلُهُمْ | فَبِاَيِّ حَدِيْثٍ | بَعْدَهٗ | يُؤْمِنُوْنَ۝ |
| چې نزدې شوې به وی | اجل ددوئ | نوپه کومه خبره به | روستوددې نه | ايمان راوړی دوئ |
| نيتې ته رانزې شوې ده نود دې قرآن نه پس به دوئ لاپه کومه خبره ايمان راوړی | | | | |

**قوله تعالى:: فَبِاَيِّ حَدِيْثٍ بَعْدَهٗ يُؤْمِنُوْنَ۝**

**دمرګ علم نه حق قبلول پکار دی:-** ارشاد دې چه زمونږ نبي دروغ ګڼرونکی آيا په دې خبره غور نه کوی چه مونږ ته څنګه غلبه حاصله ده په آسمانونو اوزمکه اوپه هغه ځيزونوکوم چه په دې کښې دی به دې تولو. دوی له پکار وو چه په دې کښې ئې غور اوفکر کولې او عبرت ئې اخستې او په دې نتيجه رسيدې چه داهرڅه دهغه ذات دی دچا چه نه څوک مثال شته نه شبيه اوهم هغه ددې خبرې مستحق دې چه عبادت او خلوص هم هغه سره اوکړې شی اود هغه د رسول تصديق اوکړې شی. د هغه د طاعت طرف ته تيټ شی، بتان بهر اوغورزوی اود دې خبرې نه اوويريږی چه مرګ نيزدې دې اوکه په کفر باندې مړه شو نود دردناك عذاب به مستحق شو. بيا فرمائي چه دې نه پس اوس نوره کومه ويره او ترهيب غواړی چه کومه دهمکی راغلې ده هغه هم د الله تعالى د طرف نه راغلې ده که هغوی د دې وحی او قرآن تصديق اونه کړی کوم چه محمد ﷺ پيش کړې نو بيا به د کومې خبرې تصديق کوی.

**د سود خورو بد حالت::** د حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې چه حضور ﷺ فرمائيلی د معراج په شپه ما اوليدل چه د اووم آسمان پورې کله زه اورسيدم پورته مې نظر اوکړو نو بريخنا او پرق مې اوکتلو او په يو داسې قوم باندې مې تيريدل اوشو د چا خيټې چه د منګو په شان پړسيدلې وې او په هغې کښې

---

(۱) ۳٤/سباء:٤٦.

ماران وو چه د بهر نه هم ښکاريدل. ما د جبرائيل ﷺ نه تپوس اوکړو نو هغه اووئيل دا سود خواره دي. اوچه کله دې ړومبي آسمان باندې کوز شو نو ما د خپل خان لاندې نظر اوکړو نو يوه لوخړه او لوګي وو او شور او غوغا وه. ما تپوس اوکړو اې جبرائيل! دا څه دي؟ نو وئيل دا هغه شيطانان دي کوم چه د انسانانو دسترګو وړاندې ګرځيدل او پړده به جوړيدل دې دپاره چه د زمکې او آسمان په ملکوت کښې انسان هډو نظر اونه کړې شي که چرې دا حائل کيدې نه نو انسان به عجيبه عجيبه خبرې کتلې. (۱)د دې د يو راوي علي بن زيد نه ډير منکر روايات هم منسوب دي.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فِيْ طُغْيَانِهِمْ | لَهٗ ط وَيَذَرُهُمْ | هَادِيَ | فَلَا | يُّضْلِلِ اللّٰهُ | مَنْ |
| هغه څوک \| چې بې لارې ئې کړې الله \| پس نشته \| څوک لاربنودنکې \| هغه ته \| او پريږدي دوئ \| په سرکښئ ددوئ کښې |
| څوک چې الله ﷻ د هدايت نه محروم کړې \| نو هغه ته هيڅوک هدايت نشي کولې \| او داسې خلق الله خپله |
| يَعْمَهُوْنَ﴿۱۸۶﴾ |
| چې سرګردانه ګرځي \| |
| سرکشئ کښې سرګردانه پريږدي \| |

قوله تعالى:: فَلَا هَادِيَ لَهٗ ط

دالله ﷻ ګمراه کړې شوی ته څوک هدايت نه شي کولې:- الله ﷻ چه د چا په نوم ګمراهي اوليکله هغه ته څوک هم هدايت نه شي کولې. که هغه څومره هم نښې اووينی هغه ته هيڅ فائده نه کيږی. څوک چه الله ﷻ په فتنه کښې واچوی هغه به څوک په نيغه لاررااولی(۲) لکه چه فرمائی ګورنی په زمکه اوآسمان کښې زمونږ څومره نښې دي. خونښې معجزې اودهمکيانې کافرانودپاره هيڅ څيز فائده مندنه دي(۳)

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قُلْ اِنَّمَا | مُرْسٰهَا ط | اَيَّانَ | عَنِ السَّاعَةِ | يَسْــَٔلُوْنَكَ |
| تپوس کوی ستانه \| په باره دقيامت کښې \| چې کله به وی \| قائميدل دهغې \| او وايه \| بيشکه |
| \| دوئ ستانه دقيامت باره کښې تپوس کوی \| چې کله به راځی اورته اووايه |
| عِلْمُهَا عِنْدَ رَبِّيْ ج لَا يُجَلِّيْهَا لِوَقْتِهَآ اِلَّا هُوَ ط ثَقُلَتْ |
| علم دهغې \| زمارب سره دي \| نهٔ ښکاره کوی هغه \| په وخت خپل باندې \| مګر \| هم هغه \| دروند دي |
| دهغې علم صرف زمارب سره دې \| هم هغه به ئې پخپل وخت ښکاره کوی \| دغه شان به |
| فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ط لَا تَاْتِيْكُمْ اِلَّا بَغْتَةً ط |
| به اسمانونو کښې \| او په زمکه کښې \| نهٔ به راځي په تاسو باندې \| مګر \| ناساپه |
| داسمانونواوزمکې ډيره سخته حادثه وی \| ...... په تاسو به بالکل ناڅاپه راځي |
| يَسْــَٔلُوْنَكَ كَاَنَّكَ حَفِيٌّ عَنْهَا ط قُلْ |
| تپوس کوی دا خلق ستا نه \| لکه چې تهٔ تحقيق کونکې ئې \| په باره دهغې کښې \| ورته اووايه |
| دوئ ستانه داسې تپوس کوی \| لکه چې تهٔ د هغې نه پوره پوره خبر ئې \| ............ورته اووايه |

(۱) احمد: ۲/۳۵۳، ابن ماجه کتاب التجارات باب التغليظ فی الربا: ۲۲۷۳ مختصراً.
(۲) ۵/المائده: ۴۱.
(۳) ۱۲/يوسف: ۱۰۱.

| إِنَّمَا | عِلْمُهَا | عِنْدَ اللّٰهِ | وَلٰكِنَّ | أَكْثَرَ النَّاسِ | لَا يَعْلَمُوْنَ |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| بیشکه | علم دهغې | دالله سره دی | لیکن | اکثر دخلقو | نه پوهیږي |

چې دهغې علم صرف الله ﷻ سره دی اخو زیات خلق بیخې نه پوهیږي ...........

**قوله تعالى: لَا يُجَلِّيهَا لِوَقْتِهَا إِلَّا هُوَ**

**دَ قیامت واقع کیدل اودَ هغې نښې** :- دا آیت د قریشو متعلق نازل شوې یا د یهودیانو متعلق د بوې دلې خو اولننی خبره ډیره صحیح ده ځکه چه دا آیت مکی دې اویهودیان خو په مدینه کښې اوسیدل دا خلق چه تانه د قیامت د وخت تپوس کوی نود دې یقین دوی نه کوی د تکذیب په انداز کښې تپوس کوی لکه ځنګه چه د دې آیت د انداز بیان نه معلومیږي. دا خلق وائی که چرې ته رښتونې یې نو دا اوښایه چه هغه به کیږي کله او په کوم تاریخ به وی؟ اوفرمائی چه دا کافران قیامت ډیر زرغواړی او مؤمنان خود قیامت د هیبت نه ویریږي او یقین ئې ساتلې دې چه د دې راتلل حق دی اوکوم خلق چه د قیامت په راتلو کښې شك کوی په لویه ګمراهئ کښې دی.(¹)اوفرمائی چه اوښایه هغه به په کوم تاریخ باندې وی؟ او دنیابه کله ختمیږي او بیا د قیامت هغه ساعت کوم یو دې. نو اې نبی (ﷺ)! اووایه چه د دې علم خو هم زمارب سره دې. د الله تعالی نه علاوه بل هیچا ته نه دې معلوم چه کله به وی. الله تعالی رسول الله ﷺ ته مشوره ورکړې ده چه اې نبی(ﷺ)! چه کله هغه خلق د قیامت د وخت متعلق تپوس اوکړی نوخبره دالله تعالی طرف ته ګرځوه چه د هغې وخت پیژندګلوخو د الله تعالی نه سوا بل چاته نه ده معلومه. په دې وجه اوفرمائیلې شو ﴿ثَقُلَتْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ﴾ یعنی دزمکې اوآسمان والا د دې د علم نه بې نصیبه دی. حسن بصری رحمه الله دا مطلب بیانوی چه کله قیامت راشی نود زمکې او آسمان والا باندې به ډیر دروند تیریږي.حضرت ابن عباس ﷺ دا مطلب بیانوی چه یو څیز به هم داسې نه وی کوم ته چه د قیامت ضرر اونه رسی. آسمان به اوشلیږی ستورې به مات راپریوځی. نمر به تیاره شی،غرونه به والوزی او الله تعالی چه څه فرمائیلی دی هغه هرڅه به کیږي. د آسمان والا ته هم د دې علم نشته. لکه چه فرمائی چه هغه به ناڅاپی راځی خلقو ته به د دې وهم اوګمان هم نه وی. حضور ﷺ فرمائیلی چه قیامت به ترهغه وخته پورې نه راځی چه یو ځل به نمر د مغرب نه راخیژی. کافران به دا عجیبه خبره ګنړی اود دې پیشن ګوئی صداقت کتلو باندې به ایمان راوړی خو چاته به هم د هغه وخت ایمان راوړل هیڅ فائده نه ورکوی. یاګناهګارانوته به په دغه وخت کښې نیك کار کول هیڅ فائده نه ورکوی.دوه کسان به د کپړې روزګار کوی اود دې غرض د پاره به د کپړې تهان کولاووی. د پنې لښلو والا به پنې لا څکلې هم نه وی، خلق به د اوبو ټینکې صفاکوی، نوړنی به د خلې طرف ته اوړلې شی چه ناڅاپی به قیامت شروع شی.(²)

﴿يَسْأَلُونَكَ كَأَنَّكَ حَفِيٌّ عَنْهَا﴾ په معنی کښې د مفسرینواختلاف دې یعنی هغوی د قیامت دراز تانه داسې تپوس کوی لکه چه ته د هغوی ډیر ښه دوست ئې اوپه داسې انداز کښې تپوس کوی لکه چه د قیامت د واقع کیدو د تاریخ نه ته واقف ئې.د دې د پاره الله تعالی اوفرمائیل چه د دې علم د الله تعالی نه سوا بل چاته نشته. الله تعالی خود دې راز نه یو مقرب ترین فرښتې ته اونه یو رسول ته ظاهر کړې دې. قتاده رحمه الله فرمائی چه قریشو به حضور ﷺ ته ونیل چه زمونږ او ستا په مینځ کښې خو خپلولی ده مونږ ته خونی اوښایه چه قیامت به کله راځی نو الله تعالی دا آیت نازل کړو چه ورته اووایه د دې علم صرف یو الله تعالی ته دې.

---

(¹) ۴۲/الشوری:۱۸.

(²) صحیح بخاری کتاب الرقاق باب:۴۰، ٦٥٠٦، احمد: ۳٦۹/۲، مسندابی یعلی:٦۲۷۱.

**د جبرائیل ﷺ داعرابی په شکل کښې راتلل اود قیامت په باره کښې سوال کول:** داخلق چه د نبی کریم ﷺ نه د قیامت د وخت باره کښې تپوس کوی نو نه پوهیږی چه نبی ته هم د دې علم نشته. د الله تعالی نه سوا بل څوك د دې علم نه لري. حضرت جبرائیل ﷺ د یو اعرابی په شکل کښې د حضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شو دې د پاره چه د دین د امورو تعلیم خلقو ته حاصل شی. اود یو طالب او د هدایت سوال کونکی په اندازکښې حضور ﷺ سره کیناستو اودحضور ﷺ نه ئی داسلام باره کښې تپوس اوکړو.بیائې د ایمان او احسان باره کښې تپوس اوکړو. بیا ئې تپوس اوکړو چه قیامت کله راتلونکې دې. د دې څلورم سوال په جواب کښې حضور ﷺ اوفرمائیل چه د دې باره کښې خو ماته ستانه زیات علم نشته. یعنی څنګه چه ته ناخبره ئې داسې زه هم ناخبره یم. او څوك هم د دې باره کښې معلومات نه لري.بیا حضور ﷺ دا آیت اولوستلو ﴿ إِنَّ اللَّهَ عِندَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ ﴾ اوپه یو روایت کښې دی چه حضرت جبرائیل ﷺ د یو اعرابی په شکل کښې د حضور ﷺ نه د قیامت د نښوباره کښې تپوس اوکړو. حضور ﷺ نښې اوخودلې. بیا حضور ﷺ اوفرمائیل چه د پنځو څیزونو علم د الله تعالی نه سوا بل څوك نه پیژنی. د حضور ﷺ په هر یو جواب باندې هغه اعرابی وائی چه تاسو صحیح اوفرمائیل لکه چه هغه ته معلومه وه اود هرې خبرې د صداقت اعتراف ئی کولو. د تصدیق په دې انداز باندې صحابه کرام حیران شو چه دا څنګه سوال کونکې دې چه پخپله سوال هم کوی او پخپله په جواب باندې تصدیق هم کوی. بیا دا سائل لاړونو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه دا جبرائیل ﷺ وو او په دې بهانه باندې تاسو ته د دین مسئلې اود معتقداتو تعلیم در کولو د پاره راغلې وو. [1] دې نه وړاندې چه کله هم هغوی صورت بدل کړې راغلې نو پیژندلې شوې دې او دا خل خو ما هم نه وو پیژندلې[2] ما د شرح بخاری په شروع کښې دا حدیث بیان کړې دې.

**د یو اعرابی د قیامت پحقله سوال کول::** اوچه کله یو اعرابی د حضور ﷺ نه تپوس اوکړو او په اوچت آواز کښې حضور ﷺ ته چغه اوکړه چه اې محمد! نو حضور ﷺ هم په اوچت آواز کښې جواب ورکړو چه او څه دی؟ نو هغه اووئیل قیامت به کله راځی نو حضور ﷺ اوفرمائیل اې نادانه چه کله هم راځی خو راځی به ضرور، خو ته اوښایه چه د هغې د پاره تا څه تیاری کړې دې. وئیل لوئ لوئ مونځونه او روژې خو مې خیر نه دې کړی خو د الله تعالی اود هغه رسول ﷺ سره زما ډیر محبت او تعلق دې. نو حضور ﷺ اوفرمائیل چه سړې به په قیامت کښې هغه چا سره وی چا سره چه محبت کوی[3] ددې حدیث په اوریدو باندې صحابه کرام رضوان الله علیهم ډیر زیات خوشحاله شو. په بخاری او مسلم شریف کښې داحدیث د اکثرو صحابه کرامو په روایتونو سره په مختلفوطریقو بیان شوې دې. د حضور ﷺ عادت مبارك وو چه کله به چا داسې سوال کولو د کوم چه به هغه ته ډیر ضرورت نه وو اود هغه د پاره به عبث وو نو حضور ﷺ به په جواب کښې د هغه هغې طرف ته مخ ګرځولو د څه پیژندل چه به د هغه د سوال کولونه د هغه د پاره ډیر ضروری وو. دې د پاره چه هغه خپل ذات دې سره د اینخلولو اهل جوړکړی اود اول نه تیاری اوکړی سره د دې چه د دې د مقررشوی وخت نه خبر نه وی. د حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها نه روایت دې چه کلې وال عرب به حضور ﷺ له راتلل نو اکثرو به دا سوال کولوچه قیامت به کله وی نو حضور ﷺ به د هغوی د یوماشوم طرف ته اشاره کوله که الله تعالی ده ته ژوند

---

[1] صحیح بخاری کتاب الایمان باب سوال جبریل النبی ﷺ...:٥٠، صحیح مسلم:١٠٠٩.

[2] احمد:١٢٩/٤رهوحسن،مجمع الزوائد:٤٠/١.

[3] ترمذی کتاب الدعوات باب ماجاء فی فضل التوبه...:٣٥٣٥،وهوحسن، مسندالطیالسی:١١٦٧،ابن حبان:٥٦٢. دَ دې معنې روایت صحیح بخاری ك تاب الادب باب ماجاء فی قول الرجل ویلك:٦١٦٧، صحیح مسلم:٢٦٣٨ کښې هم موجود دې.

ورکړو نو دې به بوډا شوې هم نه وي چه ستاسو قیامت خو به راشي([1]) نو د قیامت نه مراد مرګ شو چه د دلته نه به مو اوچت کړي اوعالم برزخ ته به مو بوځي. اود دې مضمون ډیر زیات احادیث د الفاظو په لږ شان تغیر سره پیش کړې شوی دی چه ټول په ټول هم د یو مضمون دی. د کلام حاصل دا شو چه د دې ټولو احادیث مقصد هم دغه دې چه قیامت به راځي او خامخابه راځي خود وخت مقرر ول نه شي کولې. د دې ماشوم د بوډاوالی نه وړاندې به قیامت راځي. دا اطلاق هم په دې تقید باندې محمول دې. یعنی دې نه مراد د خلقو د مرګ وخت دې.

**دوفات نه مخکښې درسول کریم ﷺپیشن ګوئی:**-دخپل وفات نه یوه میاشت وړاندې حضورﷺ فرمائیلي وو چه د قیامت باره کښې تاسو خلق مانه تپوسونه کوني. د دې علم خو الله تعالی ته دې چه په قیامت راتلوکښې څومره موده ده. خو زه قسم خورم او بیان کوم چه په دې وخت کښې په زمکه باندې څومره سا اخستونکې ژوندی دی سل کاله پس به په دوی کښې یو هم باقي نه وي. ([2]) نو لګه داسې مطلب شو چه په قیامت کښې به ټول خلق مړه کیږي دغه شان سل کاله پس به د دې موجوده خلقو د پاره قیامت راشي. که د وخت تعین کول غوارئ نو واخلئ دا مقرر وخت دې. دغه شان د قیامت مراد د دې یوې صدئ ختمیدل وو ([3]) چه خبره نی په دې طریقه سره بیان کړه.

**دمعراج په شپه دعیسی ؑسره د رسول کریم ﷺ ملاقات اود قیامت علامات:**:نبی کریم ﷺ فرمائیل چه د معراج په شپه په حضرت ابراهیمؑ، موسی ؑ او عیسی ؑ باندې زما تیریدل اوشو خلقو د قیامت ذکر کولو. دا ټول د حضرت ابراهیم ؑ خواله راغله او تپوس ئې ترې اوکړو. هغوی اوفرمائیل چه ماته خود دې هیڅ علم نشته. بیا حضرت موسی ؑ له لاړل. هغوی هم دا اوفرمائیل، عیسیؑ له لاړل نو هغوی هم اوفرمائیل چه د دې علم خو سوا د الله تعالی نه بل چاته هډو شته نه خو علامې نې دا دې چه دجال به راوځي. ما سره به یوه دوه (باڼسونه) غاښئ وي چه هغه ما اووینی نو د سیکې به شان به ویلی شي او الله تعالی به هغه هلاك کړي. تردې پورې چه ونې او کاڼړي به هم وینا شروع کړي چه اې مسلمانه زما نه شاته یو کافر پټ شوې دې راشه دا قتل کړه. الله تعالی به دا ټول کافران هلاك کړي. بیا به خلق خپلو خپلو ښارونو او وطنونوته لاړشي. په داسې وخت کښې به یاجوج ماجوج راوځي او د هرګوټ نه به راوځوتکیږي. ښارونه به تباه کړي اود هغوی په ګرځیدو سره به هر یوځیز برباد او ختم شي. تردې چه چینوته به لاړشي نو هغه چینې به هم خالي کړي. خلق به ماله د هغوی شکایت راوړي. زه به د هغوی د پاره د الله تعالی نه بددعااوغوارم. الله تعالی به هغه ټول یاجوج ماجوج هلاك کړي تردې چه د هر یوځائ فضا به د هغوی د لاشونودسخا کیدو او بدبوئي نه خرابه شي. الله تعالی به باران اوکړي اود اوبو چپې به د هغوی لاشونه سمندر ته یوسي. هغه وخت به غرونه راوځي او زمکه به خوره شي. هغه وخت به قیامت داسې نیزدې شي لکه د نهه میاشتو حامله چه په هغې باندې خلق نه پوهیږي چه په شپه ورځ کښې به کله بچې اوزیږوي. ([4]) لویو لویو پیغمبرانو هم د قیامت وخت نه پیژندلو. عیسی ؑ هم صرف د هغې علامې اوخودلې ځکه چه د دې امت په آخری زمانه کښې به هغه راکوزیږي اود حضور ﷺ احکام به نافذ کوي. مسیح دجال به قتل کړي او یاجوج ماجوج به الله تعالی

---

[1]) صحیح بخاری کتاب الرقاق باب سکرات الموت: ٦٥١١، صحیح مسلم: ٢٩٥٢.

[2]) صحیح مسلم کتاب فضائل الصحابه باب بیان معنی قوله ﷺ (علی راس مائة سنة....):٢٥٣٨، ترمذی:٢٢٥٠، احمد:٣٢٢/٣،ابن حبان: ٢٩٨٧.

[3]) صحیح بخاری کتاب مواقیت الصلاه باب السمر فی الفقه والخیر بعدالعشاء:٦٠١، صحیح مسلم: ٥٠٣٧، ابوداوٗد:٤٣٤٨، ترمذی: ٢٢٥١، احمد:٨٨/٢، ابن حبانٌ: ٢٩٨٩.

[4]) ابن ماجه کتاب الفتن باب فتنه الدجال وخروج عیسی بن مریم: ٤٠٨١، وسنده صحیح واخطاس ضعفه، احمد:٣٧٥/١، حاکم:٤٨٨/٤.

د هغه د دعا په برکت هلاک کړی. حضور ﷺ اوفرمائيل چه زه تاسو ته د هغې علامې اوښايم چه د هغې په وړاندې به لوئې فتنې او هرج مرج واقع کیږی. خلقو اووئيل چه يا رسول الله ﷺ! مونږ خود فتنې مفهوم پیژنو خوداهرج څه څیز دې؟ حضور ﷺ اوفرمائيل چه دحبشو په عربی ژبه کښې د دې معنی ده قتل. بیائې اوفرمائيل چه په خلقو کښې به پردیوالې او بې پروائی دومره زیاته شی چه یو سړې به بل ته وائی چه زه دې نه پیژنم. (١) په صحاح سته کښې خبره په داسې طریقه نه ده روایت کړې شوې.
زمونږ نبی امی سید المرسلین خاتم النبیین ﷺ چه نبیالرحمة او نبی التوبه دې فرمائیلی دی چه زه او قیامت د دې دواړو ګوتو په شان یو. حضور ﷺ د کلمې شهادت او مینځ ګوته یو ځائ کړه او ونی خودله (٢) لکه چه ماسره قیامت لګیدلې دې یعنی د دواړو په مینځ کښې بل نبی نشته. غرض دا چه د ﴿علم الساعة﴾ علم صرف الله تعالی ته دی.

| قُلْ لَّآ اَمْلِكُ | لِنَفْسِیْ | نَفْعًا | وَّلَا ضَرًّا | اِلَّا | مَا | شَآءَ اللّٰهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اووایه چې زهٔ اختیار نه لرم | ادپاره دځان خپل | دنفعې | اونهٔ دضرر | امګر | اهغه کیږی | اچې اوغواړی الله |
| ورته اووایه زه خودخپل ځان دپاره هم دنفعې نقصان مالک نه یم امګرهغه چې الله اوغواړی نو هغه کیږی | | | | | | |
| وَلَوْ | كُنْتُ | اَعْلَمُ | الْغَيْبَ | لَاسْتَكْثَرْتُ | مِنَ الْخَيْرِ | |
| اوکه چرې | وې زهٔ | اچې پوهیدلې | په غیب | اخامخا به ډیرحاصل کړې وو | ماد خیر نه | |
| اوکه ماته دغیبو خبرې معلومې وې نوخانله به مې ډیرې ښیګړې راجمع کړې وې | | | | | | |
| وَمَا مَسَّنِیَ | السُّوْٓءُ | اِنْ اَنَا | اِلَّا | نَذِيْرٌ | وَّبَشِيْرٌ | لِّقَوْمٍ |
| اونهٔ به وو رسیدلې ماته | نقصان | انهٔ یم زهٔ | امګر | یرونکې | اوزیرې ورکونکې | ادپاره دهغه قوم |
| اوهیچرې به ماته څه نقصان نهٔ وو رسیدلې | زهٔ خوبس ویرونکې اوزیرې ورکونکې یم | هغه چاته | | | | |
| يُّؤْمِنُوْنَ | | | | | | |
| چې ایمان راوړی هغه(الله) | | | | | | |
| چې ایمان راوړی | | | | | | |

قوله تعالی:: وَلَوْ كُنْتُ اَعْلَمُ الْغَيْبَ
غیب پیژندونکی اود نفع نقصان مالک الله ﷻ دی:- الله تعالی حضور ﷺ ته حکم ورکړې دې چه د ټولو امورو نسبت دالله تعالی طرف ته اوکړه او دخپل ځان باره کښې اووایه چه دراتلونکی وخت علم ماته هم نشته.اوکه الله تعالی ماته څه اوخودل نو درته به ئې اوښایم. لکه چه فرمائی د عالم الغیب علم غیب څوک نه شی موندلې(٣) ای نبی ﷺ! ورته اووایه که چرې زه د غیب په علم باندې پوهیدلم نود ځان دپاره به مې ډیر خیر راجمع کولو. یعنی که ماته د خپل مرګ خبر وو چه کله به مرم نو کوشش به مې کولو چه زر ډیر نیک اعمال اوکړم. داقول د مجاهد رحمه الله دې او ابن جریج رحمه الله هم وائی خودا خبره د غور ده څکه چه د حضور ﷺ هر عمل بنه وو اوچه کوم عمل به ئې کولو هغه به مستقل توګه باندې

---
(١) احمد:٥/٣٨٩، مجمع الزوائد: ٧/٣٠٩.
(٢) صحیح بخاری کتاب الرقاق باب قول النبی ﷺ (بعثت انا والساعة کهاتین):٦٥٠٣، صحیح مسلم:٢٩٥٠-٢٩٥١، ترمذی:٢٢١٤، احمد:٣/٢٢٢، مسندابی یعلی:٢٩٢٥، ابن حبان: ٦٦٤٠.
(٣) ٧٢/الجن:٢٦.

مضبوط وو(۱) ټول اعمال ئې هم د يوې طريقې وو. په هر عمل کښې به د حضورﷺ نظر هم په الله تعالی وو. غرض دا چه يو عمل به ئې هم بد نه وو. او دا خبره کيدې شي چه دا مراد وی که د غيب په خبرو باندې پوهيدلم نو چه د خلقو د کوم قسم خيګړه په کوم کارکښې وه نو هغه به مې د هغې نه خبرولو. ابن عباسؓ د خير معنی د مال اخستې ده. اودا مفهوم احسن دې. او يا دا چه په کومه سودا کښې راته فائده معلوميده نو ضرور به مې هغه اخستله او يو څيز به مې هم نه خرڅولو ترکومې چه په هغې کښې د فائدې علم نه وو. غرض دا چه په سوداګرئ کښې به مې چرې هم نقصان نه اوچتولو اونه به مې اوچتيدوته پريخودو. يا به په ما باندې فقر او تنګدستی کله هم نه راتله. بعضې خلقو دا مطلب هم اخستې دې چه قحط راتلو نو ډيره غله به مې جمع کوله. په ارزانه زمانه کښې به مې اخستله او د ګرانئ په زمانه کښې به مې خرڅوله او ماله به غريبی او محتاجی نه راتله اودا دې راتلونه به اول بچ کيدلم. (۲) بيا حضورﷺ اوفرمائيل چه زه خو صرف نذير او بشير يم د عذاب نه ويرونکې او د جنت زيرې ورکونکې. لکه چه الله تعالی اوفرمائيل مونږ قرآن ستا په ژبه باندې آسان جوړ کړو دې د پاره چه د تقوی اراده لرونکوته زيرې ورکړې او جنګ کونکی سرکشه خلق اوويروی.(۳)

<table>
<tr><td colspan="4">هُوَ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ</td></tr>
<tr><td colspan="4">| هغه، هغه ذات دې | چې پيدا ئې کړئ تاسو | د نفس | يو (ادم) نه</td></tr>
<tr><td colspan="4">الله ﷻ هغه ذات دې چې تاسو ئې د يو نفس نه پيدا کړی يئ</td></tr>
<tr><td colspan="4">وَّجَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا لِيَسْكُنَ إِلَيْهَا</td></tr>
<tr><td colspan="4">اوجوړه ئې کړه | دهغې نفس نه | جوړه د هغې نفس | دپاره ددې چې آرام حاصل کړی | دهغې سره</td></tr>
<tr><td colspan="4">اوهم ددغه نفس نه ئې د دهٔ جوړه پيدا کړې ده | چې هغې سره سکون بيامومی</td></tr>
<tr><td colspan="4">فَلَمَّا تَغَشّٰهَا حَمَلَتْ حَمْلًا خَفِيْفًا فَمَرَّتْ بِهٖ</td></tr>
<tr><td colspan="4">نوکله چې اسرې ورخورشو په هغې باندې | نو حامله شوه | په حمل سپک سره | پس ګرځيدله به | دهغې حمل سره</td></tr>
<tr><td colspan="4">نوکوم وخت چې دا سرې د ښځې سره يوځائې شو | نو دهغې معمولی شان حمل پيدا شو | هغه ورسره ګرځيدې شوه</td></tr>
<tr><td colspan="4">فَلَمَّآ اَثْقَلَتْ دَّعَوَا اللّٰهَ رَبَّهُمَا لَئِنْ اٰتَيْتَنَا صَالِحًا</td></tr>
<tr><td colspan="4">بياهرکله چې | درنه شوه هغه | نو دعا اوغوښتله دواړو | د الله نه | د رب خپل نه | که چرې | تا راکړو مونږته | بچی صالح</td></tr>
<tr><td colspan="4">بياهرکله چې حمل درون شو | نو دواړو په شريکه خپل رب نه سوال اوکړو | که تا مونږته نيک اولاد راکړو</td></tr>
<tr><td colspan="4">لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الشّٰكِرِيْنَ ۞ فَلَمَّآ اٰتٰهُمَا</td></tr>
<tr><td colspan="4">نوشو به مونږه خامخا | دشکرايستونکو نه | پس هرکله چې | ورکړو الله هغوئ دواړو ته</td></tr>
<tr><td colspan="4">نو مونږ به ستا ډيرشکرګزار شو | ...... ...... نو کله چې الله ﷻ هغې دواړو ته</td></tr>
</table>

(۱) صحيح بخاری کتاب الصوم باب هل يخص شيئا من الايام...:۱۹۸۷، صحيح مسلم:۷۸۳،ابوداؤد: ۱۳۷، احمد:۴۳/۶، ابن حبان: ۳۲۲.

(۲) الدرالمنثور:۶۲۲/۳.

(۳) ۱۹/مريم:۹۷.



| صَالِحًا | جَعَلَا | لَهٗ | شُرَكَآءَ | فِيمَآ | اٰتٰهُمَاۚ |
|---|---|---|---|---|---|
| صحیح سالم بچی | نو جوړ کړل دواړو | هغه دپاره | شریکان | په هغې کښې | چې ورکړې نې وو هغوئ دواړو ته |

نیک خوئ ورکړو نو دواړو د الله ﷻ دپاره په هغه ولد کښې شریکان جوړ کړل اکوم چې ورته الله ﷻ ورکړې وو

| فَتَعٰلَى اللّٰهُ | عَمَّا | يُشْرِكُوْنَ۝ |
|---|---|---|
| نو لوئ دې الله | دهغې نه | چې شریکوی نې دوئ دالله سره |

اوالله ﷻ ډیر اوچت دې ادهغه څه نه چې دوئ نې الله سره شریکان کوی ا

**قوله تعالیٰ: فَلَمَّآ اٰتٰهُمَا صَالِحًا جَعَلَا لَهٗ شُرَكَآءَ فِيمَآ اٰتٰهُمَاۚ**

**اولادالله تعالی ورکوی او مشرک ئې غیرالله ته منسوب کوی:**- ارشاد کیږی چه د دنیا جهان خلق د آدم ﷺ د نسل نه پیدا کړې شوی دی اوهم د آدم ﷺ نه د هغه بی بی حوا پیدا کړې شوه. هم د دې دواړو نه نسل زیات شو.لکه چه الله تعالی فرمائی اې خلقو مونږ تاسو د یو سړی او یوې ښځې نه پیدا کړی او دومره مولونی کړنی چه تاسو خلق خاندان اوقبیلې جوړې شونې اوتاسوله دیو بل حقونه پیژندل پکار دی اود الله تعالی په نیز په تاسوکښې د ټولونه شریف هغه دې چه د ټولونه ښه عمل اوکړی[1] . ﴿لِيَسْكُنَ اِلَيْهَا﴾ معنی ده چه یوبل سره مینه پیداشی.هم ددې دپاره نې اوفرمائیل﴿وَجَعَلَ بَيْنَكُمْ مَّوَدَّةً وَّرَحْمَةً﴾ یعنی ستاسودواړو په زړونوکښې محبت او رحمت واچولو. په دوو روحونوکښې چه کوم محبت او رحمت وی هغه د روحونو د خپل مینځ د الفت او موانست نه نشی زیاتیدې. د دې د پاره خو الله تعالی دابیان اوفرمائیلو چه ساحران اکثر د خپل سحر په ذریعه د دې خبرې کوشش کوی چه په ښځه خاوند کښې جدائی واچوی نو چه کله خاوندخپلې ښځې سره دفطری محبت په بنابانديې موانست اوقربت اختیاروی نو شروع کښې هغه په خپله خیټه کښې وړوکې بوج غوندې محسوس کوی. دا شروع د حمل زمانه وی. دغه وخت خو ښځې ته څه تکلیف نه وی ځکه چه دا حمل خو دې وخت کښې نطفه یا علقه یا مضغه ده یا دغوښې وړه غوندې ټکړه. دې وخت کښې هغه وړه او سپکه وی.

**د مَرَّتْ بِهٖ مختلف تفسیرونه اومطلب:**:ایوب وائی چه ما دحسن بصری ﷫ نه ﴿مَرَّتْ بِهٖ﴾معنې تپوس اوکړو نو هغه اوونیل که زه عرب ووم او اهل زبان ووم نو پیژندل به مې چه د دې معنی دا ده دغه شان هغه دا حمل اخستې گرځی. قتاده ﷫ د دې معنی دا خودلې چه حمل ښکاره شو. ابن جریر ﷫ وائی چه حمل سره په آسانه کیناستې پاسیدې شی. ابن عباس ﷜ فرمائی چه مطلب دا دې چه دا د شروع زمانه هغه ده چه پخپله هغې ته شك وی چه حمل شته که نه بل دا چه کله ښځې ته دې نه پس پوره بوج محسوس شی اود حمل یقین ورته اوشی نودا موربلار دواړه د الله تعالی نه دا غوښتنه کوی که الله تعالی هغوی ته صحیح سالم بچې ورکړی نو دا به د الله تعالی لوئ احسان وی. ابن عباس ﷜ فرمائی چه موربلار ته دا ویره وی چه چرته د ځناور د شکل یا اندام والا یا غیرسالم بچې اونه شیِ لکه ځنګه چه بعضې وخت کیږی. حسن بصری ﷫ دا مطلب اخلی که الله تعالی مونږ ته هلك راکړی ځکه چه په مولود کښې زیات صلاحیت والا پیدا کیدونکې هم هلك وی. نو چه کله الله تعالی هغوی ته صحیح سالم بچې ورکوی نو هغه د بتانوحصه گرځوی. د الله تعالی ذات د داسې شرك نه پاك دې. مفسرینو دلته ډیر آثار او احادیث بیان کړی دی د کوموچه به مونږ ذکر کوو، په هغې باندې به رڼرا اچوو بیا به ان شاء الله د صحیح خبرې طرف ته رهنمائی کوو، هم په الله تعالی باندې مو یقین دې.

---

[1] ٤٩/الحجرت:١٣.

قتاده ﷺ د سمره ﷺ نه روایت کوی چه نبی کریم ﷺ فرمائی چه کله د بی بی حوا وضع حمل اوشو نو ابلیس هغې له راغلو. د هغې بچې به ژوندې نه پاتې کیدو. بی بی حوا ته نی مشوره ورکړه چه د بچې نوم عبدالحارث کیږده نو ژوندې به پاتې شي. د بچي نوم نی عبدالحارث کیخودو نو هغه ژوندې پاتې شو. دادشیطان د طرف نه وسوسه وه اوحارث د شیطان نوم دې[۱] په دې حدیث کښې درې علتونه دی یو خوداچه د دې راوی عمربن ابراهیم یو مصری سړې دې. سره د دې چه ابن معین د دې توثیق کړې دې خو ابوحاتم رحمه الله ونیلی دی چه د دې نه حجت نه شی نیولې. دویم دا چه هم دغه روایت موقوفاً د حضرت سمره رضی الله عنه د خپل قول نه روایت شوې دې کوم چه مرفوع نه دې. په تفسیر ابن جریر کښې پخپله دسمره بنت جندب ﷺ وینا ده چه آدم ﷺ د خپل خوئی نوم عبدالحارث کیخودو. دریم دا چه د دې دراوی حسن نه هم د دې آیت د تفسیر نه علاوه بیان کړې شوې دې نو ښکاره ده که دا حدیث مرفوع د هغه نه روایت کړې شوې وې نو ده به پخپله د دې خلاف تفسیرنه کولو.

**ابن جریر وائی دې نه مراد بعضې مشرکان دی ، دادم ﷺواقعه نه ده::**ابن جریر رحمه الله وائی چه دا د حضرت آدم ﷺ واقعه نه ده بلکه د بعضې بل مذهب والا ده. اودا هم روایت دې چه د دې نه مراد بعضې مشرکان انسانان دی چه داسې کوی. وائی چه دا د یهودو اونصاراؤو فعل بیان شوې دې چه خپل اولاد په خپله لار اچوی. د دې آیت چه کوم تفسیر بیان شوې دې په دې ټولوکښې بهتر هم دغه تفسیر دې. د تعجب د پاره گنجائش دا وو چه داسې متقی او پرهیزگاره سړې دیو آیت په تفسیرکښې یو مرفوع حدیث د پیغمبر قول روایت کړی بیا د هغې خلاف پخپله تفسیراوکړی. دې نه دا ثابتیږی چه هغه حدیث مرفوع نه دې بلکه پخپله د سمره رضی الله عنه قول دې. دې نه پس دا خیال کیدې شی چه ممکن ده چه سمره رضی الله عنه دا د اهل کتابونه ماخوذ کړې وی لکه چه کعب او وهب وغیره چه مسلمانان شوې وو ان شاء الله د دې بیان به هم ډیر زر راشي.

**ددې قصې متعلق یو بل حدیث مبارک::**د دې حدیث مرفوع کیدل نه شی ثابتیدې. اوس یو بل حدیث هم د دې باره کښې دې. دا د ابن عباس ﷺ نه روایت دې چه د بی بی حوا به کوم اولاد کیدلوهغه به نې د الله تعالی د عبادت د پاره مخصوص کولو اود هغه نوم به نې عبدالله او عبیدالله وغیره کیخودل دا ماشومان به مړه کیدل نو حضرت آدم ﷺ او بی بی حوا له ابلیس راغلو او ورته نې اووئیل که د خپل اولاد مو څه بل څه نوم کیخولو نو هغه به ژوندې پاتې شی. اوس چه کله د بی‌بی حوا بچې اوشو نو موریلار پرې عبدالحارث نوم کیخودو.هم د دې متعلق الله تعالی فرمائی ﴿هُوَالَّذِیْ خَلَقَكُمْ﴾بی بی حواته شك وو چه حمل شته که نه نو چه کله هغه په حمل باندې درنه شوه نودې دواړو د الله تعالی نه دعا اوکړه که چرته ژوندې صالح بچې وو نو مونږ به د الله تعالی ډیر شکر گذار شو. اوس شیطان دې دواړو له راغلو او ورته نې اووئیل تاسو ته څه پته ده چه څنگه بچې به کیږی د څناور شکل او صورت به وی که د انسان. یوه غلطه خبره نې د هغوی په وړاندې ښه جوړه کړه او وروړاندې کړه او شیطان خو دهوکه ورکونکې دې. دې نه وړاندې دوه بچی شوې وو او مړه شوې وو. شیطان هغوی پوهه کړل که تاسو د دې بچی نوم زما په نوم نه ایږدئی نو نه به هغه صحیح پیدا کیږی اونه به ژوندې وی. نو هغوی د دې بچی نوم عبدالحارث کیخودو. نو الله تعالی فرمائی چه کله الله تعالی د هغوی په دعا صحیح سالم بچې ورکړو نو د هغه نوم نې عبدالحارث کیخودو او الله تعالی سره نې شرك اوکړو. په دې آیاتونو کښې هم د دې بیان دې. په یو بل روایت کښې دی چه د اول ځل د حمل په وخت کښې دا (شیطان) راغلو او هغه نې اوویروله چه زه هم هغه یم چا چه تاسو د جنت نه راوویستلئی اوس ته زما تابعداری

---

[۱] ترمذی کتاب تفسیر القرآن باب ومن سورة الاعراف: ۳۰۷۷، احمد:۱۱/۵، حاکم:۲/۵۴۵.

اوکړه کنی زما په چل ول به د ده ښکرې پیداشی او هغه به خیته اوشلوی او بهر به راوځی اودا به اوشی او هغه به اوشی. هغه نی ډیره اوویروله خو هغې د ده خبره اونه منله. د الله تعالی مصلحت وو بچی مړ پیدا شو. دویم حمل اوشو بیا بچې مړ پیدا شو. اوس ابلیس راغلو او خپله ډیره خیرخواهی نی اوکړه د بچی محبت غالب شو او د هغه نوم نی عبدالحارث کیخودو. هم د دې په بنا باندې الله تعالی اوفرمائیل﴿ جَعَلَا لَهٗ شُرَكَآءَ فِيْمَآ اٰتٰىهُمَا ﴾

**دا اسرائیلی روایت دې ددې دلیل:**:دابن عباس ﷛ نه نی داحدیث واخستو اودهغه دشاګردانو یوې ډلې هم دغه ونیلی دی. لکه مجاهد، سعید بن جبیر، عکرمه، قتاده او سدی رحمهم الله. دغه شان د سلفو نه واخله د خلفو پورې ډیرو مفسرینو د دې آیت په تفسیرکښې هم دا ونیلی دی خو ظاهره دا ده چه داواقعه د اهل کتابونه اخستې شوې ده. د دې یو لوئ دلیل دا دې چه حضرت ابن عباس﷛ دا د ابی بن کعب ﷛ نه روایت کوی لکه څنګه چه په ابن ابی حاتم کښې دی نو ظاهره ده چه دا د اهل کتابونه نقل کړې شوې ده د کوم باره کښې حضرت محمد ﷺ فرمائیلی دی چه د دوی خبرو ته مه رښتونی واینې او مه دروغ([1]) د دوی روایتونه درې قسمه وی یو دا چه د هغې صحت د یو آیت یا حدیث نه کیږی. دویم دا چه د هغې تکذیب د یو حدیث یا آیت نه کیږی. دریم هغه چه د هغې په باره څه داسې فیصله زمونږ په دین کښې ملاونه شی نو په قول د حکم حدیث په دې کښې هیڅ حرج نشته([2]) خود هغې تصدیق او تکذیب نه دی کول پکار. زما په خیال کښې خو دا اثر د دویم قسم دې یعنی د منلو قابل نه دې اود کومو صحابه کرامو او تابعینو نه چه دا روایت دې هغوی دا د دریم قسم نه ګڼړلې او روایت کړې دې. ولې مونږ خو هم هغه وایو کوم چه حسن بصری رحمه الله وانی چه د مشرکانو په خپل اولاد کښې هم د الله تعالی د شریك بیان په دې آیاتونوکښې دې نه چه د حضرت آدم ﷺ. نو الله تعالی فرمائی چه الله تعالی د دې شرك نه اوچت او بالا دې. په دې آیاتونو کښې دا ذکر او د دې نه وړاندې د حضرت آدم ﷺ او بی بی حوا ذکر په شان د توطئه دې چه د دې اصلی مورپلار ذکرنی اوکړو او بیا د نور مور پلار ذکر اوشو اوهم د دوی شرك بیان شو.

اوس شخصی اوانفرادی ذکر ختمولو سره د جنس د ذکر طرف ته د خبرې مخ ګرځولې شی لکه چه مونږ د دنیا آسمان ته په ستورو ښائست ورکړو او بیا هم دا ستوری د شیطانانو د وهلو تختولو په کارکښې راوستل.([3]) او ښکاره خبره ده چه کوم ستوری د ښائست دی هغه راشوکیږی نه او په هغې شیطانان نه ویشتلې کیږی. دلته هم د خبرې رخ داسې ګرځولې شی د ستورو شخصیت نه د ستورو جنس طرف ته. د دې نور ډیر مثالونه په قرآن کریم کښې موجود دی. والله اعلم.

| | | | |
|---|---|---|---|
| أَيُشْرِكُوْنَ | مَا | لَا يَخْلُقُ | |
| آیا شریکوی دوی | هغه څه اچي نشی پیدا کولی | | |
| آیادوی ورسره هغه شریکان جوړوی | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| شَيْئًا | وَّهُمْ | يُخْلَقُوْنَ | وَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ | لَهُمْ | نَصْرًا |
| هیڅ څیز | بلکه هغوی | پیدا کړې کیږی | اوطاقت نه لری هغوی | دپاره دهغوی | دامداد کولو |
| چه هغوی هیڅ نشی پیدا کولی | بلکه هغوی پیدا کړې کیږی | اونه دوی سره څه مدد کولی شی | اونه د | | |

[1]) ابوداؤد کتاب العلم باب روایه حدیث اهل الکتاب:۳٦٤٤، احمد:١٣٦/٤، ابن حبان:٦٢٥٧.
[2]) صحیح بخاری کتاب احادیث الانبیاء باب ماذکر عن بنی اسرائیل:٣٤٦١، ترمذی:٢٦٦٩، احمد:٢٠٢/٢، ابن حبان:٨٢٥٦.
[3]) ٦٧/الملك:٥.

وَلَآ اَنْفُسَهُمْ يَنْصُرُوْنَ ۝ وَاِنْ تَدْعُوْهُمْ اِلَى الْهُدٰى

اونهٔ دخانونو خپلو سره امداد کولې شي | اوکه چرې | تاسو رااوبلئ هغوئ | نيغې لارې ته

خپل خان مدد کولې شي | ............ اوکه تاسونې نيغې لارې ته راوبلئ |

لَا يَتَّبِعُوْكُمْ ؕ سَوَآءٌ عَلَيْكُمْ اَدَعَوْتُمُوْهُمْ اَمْ

نونهٔ کوی هغوئ پيروی ستاسوا يوشان ده | په تاسو باندې | آيا که رابلئ تاسو هغوئ | يا

نو هغوئ تاسو پسې درتلې نشي | ستاسودپاره يوشان خبره ده که تاسو هغوی رابلئ او که

اَنْتُمْ صَامِتُوْنَ ۝ اِنَّ الَّذِيْنَ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ عِبَادٌ

تاسو | چپ اوسئ | بيشکه هغه کسان | چې تاسونې رابلئ | ماسوا دالله نه | بندګان دي

تاسو چپ پاتې شئ | ............بيشکه کوم کسان چه تاسو د الله نه سوا د مدد د پاره رابلئ انو هغوئ

اَمْثَالُكُمْ فَادْعُوْهُمْ فَلْيَسْتَجِيْبُوْا لَكُمْ اِنْ كُنْتُمْ

په شان ستاسو | نورااوبلئ هغوئ اپس قبول والې دې اوکړی هغوئ | ستاسو | که يئ تاسو

ستاسوپه شان بندګان دئ انوتاسوورته آواز اوکړئ چې هغوئ نې قبول کړی | که چرې تاسو

صٰدِقِيْنَ ۝ اَلَهُمْ اَرْجُلٌ يَّمْشُوْنَ بِهَآ اَمْ لَهُمْ اَيْدٍ

رښتينی | آيا شته د دوئ | پښې | چې ګرزی دوئ | په هغې | ايا شته د دوئ | لاسونه

رينبتونی يئ (چې دا زمونږ خدايان دي) | آيادهغوی پښې شته چې تګ پرې اوکړی | يانې لاسونه شته چې

يَّبْطِشُوْنَ بِهَآ اَمْ لَهُمْ اَعْيُنٌ يُّبْصِرُوْنَ بِهَآ اَمْ

چې نيول کوی | په هغې سره | ياشته د دوئ | سترګې | چې ليدل کوی | په هغې سره | يا شته

نيول پرې اوکړی | ............يانې سترګې شته چې کتل پرې اوکړی | او يا نې غوږونه شته

لَهُمْ اٰذَانٌ يَّسْمَعُوْنَ بِهَا ؕ قُلِ ادْعُوْا شُرَكَآءَكُمْ ثُمَّ

د دوئ | غوږونه | چې اوريدل کوی | په هغې سره | اووايه | چې رااوبلئ | شريکان خپل | بيا

چې آوريدل پرې اوکړی | ......دانې پيغمبره ﷺ ته ورته اووايه چې تاسوخپل شريکان راوبلئ | بيا

كِيْدُوْنِ فَلَا تُنْظِرُوْنِ ۝ اِنَّ وَلِيِّۦَ اللّٰهُ الَّذِيْ

تدبيراوکړئ خلاف زما | پس مهٔ راکوئ مهلت ماته | بيشکه | ولی زما | الله دې | هغه الله

زمادنقصان تدبيرونه جوړ کړئ | اوماته هيڅ مهلت مهٔ راکوئ | زما مددګارخوهغه الله ﷻ دې

نَزَّلَ الْكِتٰبَ ۖ وَهُوَ يَتَوَلَّى الصّٰلِحِيْنَ ۝ وَالَّذِيْنَ

چې نازل کړې نې دې | کتاب | اوهغه | دوستی کوی | دصالحانو | اوهغه

چې داکتاب (قرآن) نې نازل کړې دې | اوهغه هميشه د نيکانو خلقو ملګرتياکوی | او هغه څوک

| تَدْعُوْنَ | مِنْ دُوْنِهٖ | لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ | نَصْرَكُمْ | وَلَآ اَنْفُسَهُمْ |
|---|---|---|---|---|
| چې تاسو ئې رابلئ | ماسوا دهغه نه | نه لری طاقت هغوئ | دامداد ستاسو | اونه دخانونوخپلو سره |
| چې دالله ﷻ نه سوا ئې تاسو رابلئ | نوهغوئ نه ستاسو مددکولې شي | اونه دخپل خان | | |
| يَنْصُرُوْنَ۝ | وَاِنْ | تَدْعُوْهُمْ | اِلَى الْهُدٰى | لَا يَسْمَعُوْا |
| امداد کولې شي | اوکه چرې | تاسو راوبلئ دوی | نيغې لارې ته | نو نه اوری هغوئ |
| مددکولې شي | ........اوکه ته دوی هدايت طرف ته راوبلې | نو آواز نه آوری | | |
| وَتَرٰىهُمْ | يَنْظُرُوْنَ | اِلَيْكَ | وَهُمْ | لَا يُبْصِرُوْنَ۝ |
| او وينې ته هغوئ | چې گوری | تاته | اوحال دا چې هغوئ | هيڅ هم نه وينی |
| اوداسې ښکاري چې هغوئ په (غټوغټو) گوری | خوهغوئ ددې باوجود هم هيڅ نه وينی | | | |

**قوله تعالي::** اَلَهُمْ اَرْجُلٌ يَّمْشُوْنَ بِهَآ

**دمشرکانو کونکیان کانړه ړانده معبودان:**-هغه مشرکان چه د الله تعالی په ځائ د بتانو عبادت کوی دوی ته خبرداري ورکولې شی چه دا بتان هم د الله تعالی مخلوق دي اویو جوړشوي څيز دي. د دوی په یوه خبره هم قدرت نشته نه دوی چاته نقصان رسولې شی او نه فائده، نه په دوی کښې د کتلو طاقت شته اونه دوی د خپلو عبادت کونکو څه امداد کولې شی. بلکه دا بتان خود کانړو نه دی حرکت قدرې نه شی کولې بلکه د دوی عبادت کونکی د دوی نه په څو درجو کښې غوره دی. اوریدې شی کتې شی محسوس کولې شی او نیولې شی. څنګه چه فرمائی اې خلقوا یو مثال بیانولې شی واورئې داخلق چه دالله ﷻ نه بغیرد نورو عبادت کوی هغوی یو مچ قدرې نه شی جوړولې که ټول په ټول کوشش ولې اونه کړی بلکه که یو مچ د هغوی د خوراك څه څیز یوسی نوهغه د ده نه واپس نه شی اختې.طالب او مطلوب څومره کمزوې او بې قدرته دی. هغوی د الله تعالی قدر اونه پیژندلو. بې شکه الله تعالی ډیر قوی اوعزیز دي.لکه څنګه چه ابراهیم ﷺ فرمائیلی وو﴿ اَتَعْبُدُوْنَ مَا تَنْحِتُوْنَ۝ ﴾ آیا تاسو ددې عبادت کونې کوم چه تاسو پخپله جوړونی. بیا فرمانی چه هغه د خپل عبادت کونکی لړ شان امداد هم نه شی کولې.تردې که هغه سره څوك خراب سلوك اوکړی نو پخپله خپل بچاؤ هم نه شی کولې.لکه څنګه چه ابراهیم خلیل الله ﷺ د خپل قوم بتان مات کړې وو اود هغې ډیر سپکاوې ئې کړې وو. الله تعالی فرمائی چه حضرت ابراهیم ﷺ په وهلو وهلو دا بتان ټکړې ټکړې کړې ووخو د بت خانې دټولونه لوئې بت ئې پریخودې وو. دې د پاره چه خلق راشی اود دې غټ بت نه تپوس اوکړی چه دا څه اوشو اودا چا اوکړه.

**د معاذینو قصه::**حضرت معاذ بن عمرو بن الجموح رضی الله عنه او معاذ بن جبل رضی الله عنه دواړه خوانان وو. مسلمانان شوي وو. د شپې به مدینه کښې د مشرکانوبتانوله تلل او هغه به ئې ماتول. که هغه د لرګی وو نو د ماتولو نه پس به ئې غریبانانو کونډو ښخو ته ورکول دې دپاره چه د دې کمبختو مشرکانوته څه سبق ملاوشی او په خپل عمل او عقیده باندې څه غور اوکړی. عمرو بن جموح د خپل قوم سردار وو. د هغه یو بت وو ده به د هغې بت عبادت کولو په هغې به ئې خوشبوئې مږلې. هغه دواړه خوانان به د شپې په وخت کښې د هغه بت خانې ته تلل د هغه په سر به ئې ګندګی کوله. عمرو بن جموح چه به هغه بت په داسې حال کښې لیدونو هغه به ئې وینخلو او خوشبوئې به ئې پرې مږلې.اوهغه سره به ئې توره کیخوده اوونیل به ئې چه په دې باندې مدافعت کوه. دې خلقو به بیا داسې کول او ابن جموح به دا

صفا کولو او هغه سره به نی توره کیخوده. اخر دې خلقو دا بت راوویستو اویو د سپی لاش پوزې
اوترلو اودیوې رسئی په ذریعه نی په کوهی کښې زوړند کړو. کله چه عمرو بن الجموح راغلو او دا حال
نی اولیدلو نو هغه ته عقل راغلو چه هغه خو په بت پرستنی کښې باطله عقیده لری نو هغه اووئیل که
ته په رښتیا سره رب وې نو سپی سره به په کوهی کښې زوړند نه وې. بیا هغه اسلام راوړلو او بنه
مسلمان شو او په جنګ احد کښې شهید شو.(١)

**ابراهیم ﷺ اوهود ﷺهم دا مسئله کړې وه::** د الله ﷻ ارشاد دې که چرې تاسو دوی د هدایت طرف
ته راغواړئی نو هغوی به چرې هم ستاسو نه منی. یعنی دا بتان د چا آواز نه اوری. دوی ته آواز کول د
نه آواز کولو برابر دی. حضرت ابراهیم ﷺفرمائیلي وو چه اې پلاره د داسې بت عبادت مه کوه چه نه
اوری او نه لیدلې شي نه ستا څه کارکولې شي. بیا ئې اوفرمائیل هغه خو هم د الله تعالی مخلوق دې
لکه دا بت پرست بلکه دا بت پرست د دې بتانونه بنه دی چه لیدلې شي اوریدلې شي او محسوس
کولې شي. بیا فرمائي چه بنه ده د خپل امداد د پاره خپل شریکان راوغواړئی او ماته د سترګو رپولو
هومره مهلت هم مه راکوئی او زما خلاف په کولاؤ زړه سره کوشش اوکړئی اوګورئی. زما امدادی هغه
الله تعالی دې چا چه کتاب نازل کړو هغه د نیکوکارانو ولی دې. هم هغه الله تعالی زما د پاره کافی
دې.هم هغه به زما امداد کوی هم په هغه باندې زما یقین دې که زه مجبور یم نو هم دهغه مجبور یم.
هغه په دنیااوآخرت کښې نه صرف زمابلکه زمانه پس هم د هر نیکوکار سرپرست دې. لکه چه هودﷺ
خپل قوم ته په جواب کښې فرمائیلي وو په هغه وخت کښې چه دهغه قوم په ده باندې تهمت لګولې وو
چه په تا باندې زمونږ د خدایانو څه اثر شوې دې څکه خو ته داسې ګډې وډې خبرې کوې. نو هغه
جواب ورکړو چه زه خود الله تعالی ګواهی ورکوم او صفا صفاوایم چه زه ستاسو د شریکانو نه نفرت او
ویزاری ښکاره کوم. بنه ده تاسو ټول یوځائ شئی څه شیطاني اوکړئی اوګورئی اود سا اخستلو د پاره
هم ماته مهلت مه راکوئی. تاسو به زما څه اوکړئی. زما یقین خو په الله تعالی باندې دې چه هغه زما
او ستاسو رب دې. په زمکه باندې داسې یو سالرونکې نشته د چا واګه چه د هغه په لاس کښې نه وی.
زما رب په نیغه او رښتونې طریقه باندې دې. او ابراهیم خلیل الله ﷺ فرمائیلي وو ستاسو څه خیال
دې د دې بتانوباره کښې د کومو چه تاسو اوستاسو پلارانو نیکونو عبادت کړې وو. دا خلق خو زما
دښمنان دی خو الله تعالی زما دوست دې. هغه زه پیدا کړې یم او هم هغه به ما په صحیح لار روانه
وی. اولکه څنګه چه ابراهیم ﷺ خپل پلار او خپل قوم ته فرمائیلي وو چه زه خو ستاسو د خدایانو نه
بری یم خود خپل رب زه عبادت کونکې یم چا چه زه پیداکرم او بیا ئې زما هدایت اوکړو اود هغې نه
پس نی یوه کلمه یادګار جوړه کړه کیدې شي چه دوی د خپلې خبرې نه رجوع اوکړی اود دې د پاره نی
اوفرمائیل چه هغه نه ستاسو امداد کولې شي اونه خپل. اوکه تاسو هغه د هدایت طرف ته راغواړئی نو
هغه خاورې نه اوری نه پوهیږی چه هغه ستاسو طرف ته نظر اوکړی او خاورې هم څه نه وینی. هغوی
خپل تصویرونه او سترګې تاسو ته څلور کړی دی لکه چه په رښتیا سره ګوری ولې هغه خو بې سا څیز
دې. په دې وجه نی دوی سره داسې معامله اوکړه چه یو د عقل خاوندنی کوی. د دې بتانو شکل خو
تصویری شکل دې اود انسان په شان معلومیږی تاسو ګورئی لکه چه هغوی تاسو ته نیغ ګوری هم دغه
وجه ده چه د دوی طرف ته د "هم" ضمیراوګرځولې شو کوم چه د انسان طرف ته ګرځولې شی حالاتکه
بې سا څیز د "ها" د ضمیر حق دار دې. سدی ﷬ د دې نه د بتانو په ځائ مشرکان مراد اخلی خو
رومبې خیال صحیح دې.

---

(١) دلائل النبوه:٢/٤٥٦.

| وَاِمَّا | عَنِ الْجٰهِلِيْنَ﴿١٩٩﴾ | وَاَعْرِضْ | بِالْعُرْفِ | وَاْمُرْ | خُذِ الْعَفْوَ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوكه چرې | د جاهلانونه | اوبه ډډه شه | په نيكئ سره | اوحكم كوه | اونيسه معافي لره |

رانې پيغمبره ﷺ ته معافي كوه | او د نيكئ حكم كوه | او دجاهلانونه ډډه كوه | اوكه چرې

| اِنَّهٗ | بِاللّٰهِ ط | فَاسْتَعِذْ | نَزْغٌ | مِنَ الشَّيْطٰنِ | يَنْزَغَنَّكَ |
|---|---|---|---|---|---|
| بيشكه هغه | په الله سره | نوپناه اوغواړه | يوه وسوسه | دطرفه دشيطان نه | رامنع كړي تا |

دشيطان دطرفه ستا په زړه كښې څه وسوسه پيدا شي انو په الله ﷻ سره پناه اوغواړه | بيشكه هغه ذات

| عَلِيْمٌ﴿٢٠٠﴾ | سَمِيْعٌ |
|---|---|
| اوښه پوهه دې | ښه اوريدونكي دې |

اوريدونكي او عالم دې |

**قوله تعالى:: خُذِ الْعَفْوَ**

**قصوروار معاف كول پكار دي:**- ابن عباس ﷺ فرمائي د ﴿خُذِ الْعَفْوَ﴾ مطلب دا دې چه د دوی هغه مالونه چه د دوی د ضرورتونونه زيات دي او هغه مالونه چه تاله ئې راوړي هغه واخله. دا عمل په سورة برات كښې دفرائضو صدقاتود توضيح اوتشريح نه اول ووچه صدقات به هغوی ته پيش كولې شو. او ضحاك رحمه الله وائي ﴿خُذِ الْعَفْوَ﴾ معنی ده چه كوم زياتې دې هغه خرچ كړئې. دعفو معنی ئې په زياتي سره كړې ده. زيد بن اسلم رحمه الله وائي چه په دې كښې مشركانوسره دعفوې معافئي حكم دې. لس كالوپورې دا عفوه اومعافي وه بيا د سختئي كولو حكم اوشو. داد ابن جرير رحمه الله قول دې. مجاهد رحمه الله وائي چه د خلقود اخلاقواو اعمالونه معافي كوه يعنی د هغوی د اعمالو او اخلاقو لټون مه كوه. مراد دا دې چه معافي كوه اود خراب مجلس اختيارولونه بچ شه. په الله تعالی قسم دې چه زه كوم مجلس اختياروم خامخا به د هغې خوئې بوئې اخلم. په ټولو اقوالوكښې هم دا قول ډير بهتردې.

عيينه رحمه الله نه روايت دې چه كله الله تعالی په خپل نبی ﷺ باندې دا آيت نازل كړو ﴿خُذِ الْعَفْوَ وَاْمُرْ بِالْعُرْفِ وَاَعْرِضْ عَنِ الْجٰهِلِيْنَ﴾ نو حضور ﷺ د جبرائيل ؏ نه تپوس اوكړو د دې نه څه مقصد شو نو جبرائيل ؏ اووئيل چه الله تعالی تاته حكم دركوي چه څوك ستا په ذات باندې زياتې اوكړي نو هغه معاف كوه. څوك چه تاته نه دركوي نو ته هغوی ته وركوه څوك چه تاسره تعلق ختم كړي ته هغوی سره تعلق ساته.

([1]) هم د دې مضمون حديث متعلق ابن عامر ﷺ وائي چه ما حضور ﷺ سره ملاقات اوكړو ما د حضور ﷺ لاس اونيولو اوعرض مې اوكړو يارسول الله ﷺ ماته بهترين اعمال اوښايه. حضور ﷺ اوفرمائيل چه اې عقبه بن عامر! څوك چه تاسره همدردي نه كوي ته هغوی سر همدردي كوه څوك چه تامحروم كړي ته هغوی د وركولو نه مه محروم كوه. څوك چه ستا ذات سره متعلق زياتې اوكړي ته هغه سره معافي اوښنه كوه. ﴿خُذِ الْعَفْوَ وَاْمُرْ بِالْعُرْفِ وَاَعْرِضْ عَنِ الْجٰهِلِيْنَ﴾ (معافي كوه اوبه نيكوكارونوكښې لارخودنه كوه اود جاهلانو خلقو نه ځان خبره جوړېږه) ([2]) د عرف معنی د معروف ده.

**دحربن قيس د تره عيينه قصه:**:صحيح بخاري شريف كښې دي چه عيينه رحمه الله خپل وراره حربن قيس رحمه الله كره راغلو حصارشو.حربن قيس رحمه الله د حضرت عمر ﷺ درباري سړي وو. هغه د قرآن كريم ماهر وو

---

[1]) الطبري: ٦/١٥٤، ابن ابي حاتم: ٥/١٦٣.

[2]) ترمذی كتاب الزهد باب ماجاء في حفظ اللسان:٦٠ ٢٤.

او د قاريانو علماو د حضرت عمر رضي الله عنه د مجلس مشاورت ركن وو. دا علماء به ځوانان هم وو او بوډاګان هم.عيينه رحمه الله خپل وراره ته اوونيل اې وراره تاته اميرالمؤمنين سره تعلق حاصل دې زما اجازت واخله چه زه هغه سره ملاو شم.نو حر رحمه الله دعيينه رحمه الله دپاره اجازت حاصل كړواوحضرت عمر رضي الله عنه د حاضريدواجازت وركړو.كله چه عيينه امير المؤمنين سره ملاو شو نو وني ونيل اې ابن خطاب! تاموږ ته پوره روپئې نه دي راكړې اونه دې زموږ سره د عدل نه كاراخستې. د عدل نوم اوريدو سره حضرت عمر رضي الله عنه غصه شو او نيزدې وه چه عيينه رحمه الله نې وهلې وو. نو حر رحمه الله اوونيل چه اې اميرالمؤمنين الله تعالى خپل نبي ﷺ ته فرمائيلي دي چه معافي كوئې او په نيكوكارونوكښې مشوره وركوئې او د جاهلانونه ډډه كوئې او دې خو د جاهلانونه دې. په الله تعالى قسم چه كله د حضرت عمر رضي الله عنه په وړاندې دا آيت تلاوت كړې شو نو هم هلته اودريدو هيڅ غصه نې اونه كړه. هغه د الله تعالى د كتاب نه ډير واقف وو. صرف بخاري رحمه الله دا روايت كړې دې.

**دجرس د استعمال نه ممانعت::** روايت دې چه د سالم بن عبدالله د اهل شام په يوه قافله باندې تيريدل اوشو په قافله كښې جرس كړنګيدو. نووني ونيل چه جرس كړنګول منع دى. كافران په مندرونو كښې جرسونه كړنګوي نو د قافلې والا اوونيل چه په دې باره كښې موږ ته ستانه زيات معلومات دي. ممانعت په لويو لويو جرسونو كښې دې په وړو وړو كښې هيڅ حرج نشته. نو سالم خاموش شو او صرف دومره نې اوونيل ﴿وَأَعْرِضْ عَنِ الْجٰهِلِيْنَ﴾ يعني جاهلانوسره مخ نه لګول بهتر دى. او د بخاري د اقول چې العرف يعني المعروف ، ددې تصريح عروه بن زبير ، سدى ، قتاده او ابن جرير وغيره كړيده او ابن جرير حكايت كړې دې چې ونيلى شى ﴿اوليته عرفا،عارفا،وعارفة﴾ د ټولو هم يوه معنى ده معروف يعنى نيك كار. الله تعالى خپل نبى ﷺ ته حكم وركړې دې چه بنديګانوته د نيك كار حكم وركوه. په لفظ معروف كښې ټول نيك كارونه داخل دى او د جاهلانو نه ډډه كولو حكم نې هم وركړې دې اګرچه د دې ماموربه په ظاهره نبى كريم ﷺ دې خو په حقيقت كښې ټول بنديګان مامور دى. د دې په ذريعه بنديګانوته ادب خودلې كيږي كه څوك په تاباندې ظلم كوى نو هغه برداشت كړه دا مطلب نه دې چه څوك د الله تعالى په واجبى حقوقوكښې كمې زياتې اوكړي نو بيا هم اعراض اوكړې يا د الله تعالى نه كفر اوكړي يا د وحدانيت نه جاهل پاتې شى نو بيا هم معافى اوكړې. دمسلمانانو سره د خپل جهالت په وجه اوجنګيدې نو بيا هم خاموش شه مطلب دا چه داسې غلط فهمى نه دى كيدل پكار. دا هغه اخلاق دى د كومو تعليم چه الله تعالى خپل خوږ نبى ﷺ ته وركړې دې. دا مضمون يو عقل مند شاعر ډير په ښه اندازيه شعركښې ليكلى دې. هغه وائى:

﴿خذ العفو وامر بعرف كما | امرت واعرض عن الجهلين﴾
﴿ولن فى الكلام لكل الانام | فمستحسن من ذوي الجاهلين﴾

**ترجمه:** دمعاف كولو عادت اوساته، د نيكوكارونورهبرى كوه، د جاهلانونه اعراض كوه، هر سرى سره په خبروكښې نرمى كوه، اود اوچتې مرتبې والا سره په خبروكښې نرمى كول نور هم ډير مستحسن دى.

**د اعراض عن الجاهل مطلب::** د بعضې علماو مقوله ده چه خلق دوه قسمه وى يو هغه سړې محسن دى چه هغه په خوشحالئى سره په تاڅه احسان اوكړي د شكريه سره نې قبول كړه اود هغه د طاقت نه زيات په هغه باندې بوج مه اچوه چه هغه په خپله دباو پاتې شى. بل بد قسم سړې، ده ته د نيك كار د كولو مشوره وركوه څوكه د هغه ګمراهى زياتيږي او هغه په خپل جاهليت باندې قائم وى نود هغه نه ډډه كوه. كيدې شى چه ده ته معافى كول هغه د دې بدئى نه منع كړي لكه چه الله تعالى فرمائى په بهترينه طريقه باندې مدافعت كوه دغه شان به دښمنان هم ستا دوستان جوړ شى. موږ ته ښه پته ده كوم څه چه هغوى اظهارخيال كوى نو وايه چه اې الله تعالى! زه دشيطان د غولولونه ستا پناه غواړم. او

د هغې نه پناه غواړم چه شیطانان زماسره په عمل کښې داخل شي او فرماني چه نیکي او بدي برابر نه وي. مدافعت او د جواب رد په ښه شان سره ورکوه. دا عمل هغه خلق اختیاروي چه د طبیعت نه صابر وي. په نتیجه کښې به هغوی ته لویه کامیابي حاصلیږي. خوش قسمته به په دې باندې عمل کونکي وي. که شیطان ستا په زړه کښې څه وسوسې واچوي او دهوکه دې کړي یا تا د دښمن سره د مقابلې په وخت کښې په غصه کښې راولي اود دغه جاهل نه د ډېدې کولونه تا منع کړي اوهغه سره په جګړه باندې تا اماده کړي نود الله تعالی نه پناه غواړه. د جاهل په تاباندې زیاتې هم الله تعالی وینی اوستا پناه غوښتل هم الله تعالی اوري دهغه نه هیڅ خبره پټه نه ده. د شیطان غولول او فساد کښې راوستل چه تاته څومره نقصان دررسولې شي الله تعالی په هغې باندې خبر او علیم دې.

**د عفوسره اعوذ بالله هم وئیل پکاردی:** کله چه ﴿خُذِالْعَفْوَ﴾ والا آیت نازل شو نو رسول ﷺ اوونیل یا الله! غصه راشي نو څنګه معافي اوکړې شي؟ نو﴿فَاسْتَعِذْبِاللّٰهِ﴾ والا آیت نازل شو. د هغه دوو کسانو واقعه وړاندې بیان شوه چه دې دواړو د حضور ﷺ په وړاندې جنګ اوکړو تردې چه د یو د غصې د وجې سپیږمې اوپړسیدې.نو رسول الله ﷺ اوفرمانیل چه زه یوه داسې کلمه پیژنم که هغه اولوستلې شي نو غصه به ئې ختمه شي. هغه کلمه دا ده. ﴿اعوذبالله من الشیطن الرجیم﴾ هغه ته دا خبره اوخودلې شوه نو وئې وئیل چه ماته څه لیونتوب خو نه دی [1] د نزغ اصلي معنی فساد ده. دا فساد که د غصې د وجې نه وي اوکه د بې غصې د وجې. الله تعالی فرماني اې نبی ﷺ زما بندیګانوته اووایه چه خبره په ښه طریقه سره کوني. شیطان په خپل مینځ کښې د فساد کوشش کوي. د عیاذ معنی ده د شر نه پناه غوښتل او ملاذ د خیر په طلب کښې کولې شي. د ﴿استعاذه﴾ احادیث په اول تفسیرکښې تیرشوی دی د دوباره ذکر کولو ضرورت نشته.

| | | | |
|---|---|---|---|
| إِنَّ الَّذِينَ | | اتَّقَوْا | إِذَا مَسَّهُمْ |
| ابیشکه هغه کسان \| چې ویریږي(د الله نه)\|کله چې اورسیږي هغوی ته | | | |
| بیشک کوم کسان چې پرهیزګار دي \| که هغوی ته د | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| طَٰٓئِفٌ | مِّنَ الشَّيْطَٰنِ | تَذَكَّرُوا | فَإِذَا هُم | مُّبْصِرُونَ ﴿٢٠١﴾ |
| یوه وسوسه\| | دشیطان نه | \| نو یاد شي ورته (حکم د الله)\| | نو بیا هغوی \| | لیدونکي وي |
| دشیطان د طرفه څه وسوسه اورسي انو زر الله ﷻ یاد کړي \| او سمدستي ئې سترګې اوغړیږي | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَإِخْوَٰنُهُمْ | يَمُدُّونَهُمْ | فِي الْغَيِّ | ثُمَّ | لَا يُقْصِرُونَ ﴿٢٠٢﴾ |
| اوروڼه ددوی \| | راکاږي دوی \| | په ګمراهۍ کښې \| | بیا \| | نه کوي هیڅ کمې \| |
| (رباتي شو)دشیطان روڼه نوهغوی خودوی غلطي لاري ته راکاږي اا وهیڅ کمي په کښې نه کوی اا | | | | |

**قوله تعالي:: تَذَكَّرُوا**

**دشیطاني وسوسونه دبچ کیدوطریقه.**- کومو بندیګانو چه دالله تعالی دامر اطاعت اوکړو اود ممنوعاتو نه منع شو اوشیطاني وسوسو سره دهغوی لمن اینختې وی نو ډیرزر هغوی ته دالله تعالی دذکریاد راځي.

[1] د دې اصل صحیح بخاری کتاب بدءالخلق باب صفة ابلیس وجنوده: ۳۲۸۲، صحیح مسلم: ۲۶۱۰ کښې موجود دې.

**دلفظ طائف مطلب::** دې لفظ ته بعضې طیف اوبعضې طائف وائی.دادواړه قراءتونه مشهور دی او معنی نی هم یوه ده.ونیلی شی چه څه فرق هم شته. بعضو ددې معنی غضب خودلې اوبعضو ونیلی دی شیطان که پرې اثر کړې وی. اوبعضو ونیلی دی چه د ګناه په وجه پښیمانیتیا او خفګان. بعضو ونیلی دی چه دګناه کول.داسې خلقوته دالله تعالی عقوبت، ثواب ورکول، وعدې او وعیدونه رایادیږی نو هغوی توبه کوی. د الله تعالی په وړاندې تیتیږی او ډیر زر د هغه طرف ته رجوع کوی او د هغه نه پناه غواړی. هغه ډیر زر د بصیرت خاوند جوړیږی که په بې هوشئی کښې وو نو په هوش کښې راځی. وائی چه یوه ښځه نبیﷺاکرم له راغله په هغې د مرګی بیماری وه. حضورﷺ ته نی عرض اوکړو اې رسول الله ﷺ! د الله تعالی نه زما دشفا د پاره دعا اوغواړه. حضورﷺ اوفرمائیل چه که ستا هم دغه مرضی ده نو زه د الله تعالی نه دعاغواړم هغه به تاته شفا درکړی اوکه ته غواړې نو صبر اوکړه د قیامت د ورځې حساب به تانه ختم شي. نو ونیل چه ښه ده که زه په بیمارئی باندې صبر اوکړم نو زه به د حساب نه آزاده کړې شم. هغې دا ونیل چه زما د غوټې بیماری ده هوش او هواس پاتې نه شی، د بدن نه مې کپړې لرې شی او بربنډه شم که بیماری نه لرې کیږی نو نه دې لرې کیږی خو دعا اوکړه چه کم نه کم زما جامې نه کولاویږی. حضورﷺ دعا اوکړه او بیا کله هم د غوټې او چیچې په وخت کښې: هغې جامې د بدن نه نه اخواکیدی.(۱)

وائی چه یو ځوان په جمات کښې ناست وو عبادت نی کولو یوه ښځه په هغه عاشقه شوه هغه به نی خپل طرف ته مائله کولو. تردې چه یوه ورځ هغه د دې کورته راغلو نوډیر زر هغه ته دا آیت یاد شو ﴿ إِنَّ الَّذِينَ اتَّقَوْا إِذَا مَسَّهُمْ طَيْفٌ مِّنَ الشَّيْطَانِ تَذَكَّرُوا فَإِذَا هُم مُّبْصِرُونَ ﴾ اودې سره په هغه دوره راغله او راپریوتلو. کله چه نی هوش راغلو نو بیا نی دغه آیت او لوستلو او په لوستلو لوستلوکښې نی سا ورکړه. حضرت عمر ﷺ راغلو د هغه پلار سره نی همدردی اوکړه. هغه د شپې خښ کړې شو نو حضرت عمرﷺ د بعضې ملګرو سره د هغه قبر له لاړو. د ماښام مونځ نی اوکړو بیا قبرته مخاطب شو اوداسې وینا نی شروع کړه اې ځوانه! ﴿ وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَانِ ﴾ یعنی چه څوك د الله تعالی نه اوویریدو د هغه د پاره دوه جنتونه دی.داآیت اوریدو باندې دقبرنه آواز راغلو اې عمرﷺ! الله تعالی ماته دواړه جنتونه راکړی دی.

**تاریخ د دمشق لابن عساکر::** د الله تعالی ارشاد دې ﴿ وَإِخْوَانُهُمْ يَمُدُّونَهُمْ ﴾ یعنی د هغه انسانی شیطانان ملګری هغه د ګمراهئی طرف ته په راښکلو بوخی. لکه چه فرمائی ﴿ إِنَّ الْمُبَذِّرِينَ كَانُوا إِخْوَانَ الشَّيَاطِينِ ﴾ یعنی فضول خرچ کسان د شیطان رونړه دی. یعنې د هغوی تابعداران د هغوی خبرې منونکی دی او ګمراهئی طرف ته نی اوری. د ګناه کارونه هغوی ته آسانوی او ګناهونه د هغوی په نظرکښې ښکلې کوی. د مد معنی د زیاتی ده یعنی په جهل او ګمراهئی کښې زیاتې کوی. ﴿ ثُمَّ لَا يُقْصِرُونَ ﴾ یعنی دا چه شیطانان په خپلو کوششونوکښې کوتاهی نه کوی. حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه نه انسان په خپلو بدواعمالوکولوکښې کوتاهی کوی اونه شیطانان د هغې نه منع کیږی. د ګمراهئی طرف ته راښکل کونکی پیریان او شیطانان دی چه خپل انسانی اولیاؤ ته خپله وحی رالیګی. او د دې نه خپل کوشش نه اوچتوی. په دې وجه د هغوی فطرت او طبیعت هم داسې دی. لکه چه الله تعالی اوفرمائیل ﴿ أَلَمْ تَرَ أَنَّا أَرْسَلْنَا الشَّيَاطِينَ عَلَى الْكَافِرِينَ تَؤُزُّهُمْ أَزًّا ﴾ یعنی اې پیغمبرﷺ! تا اونه لیدل چه مونږ شیطانان کافرانوله اولیږل چه دا کافران د ګناه طرف ته مائل کوی.

(۱) احمد:۱/۲۴۱وسنده حسن، حاکم:۴/۲۱۸، ابن حبان:۲۹۰۹، صحیح بخاری کتاب المرضی، باب فضل من یصرع من الریح:۵۶۵۲، صحیح مسلم: ۲۵۷۶.

| وَاِذَا لَمْ تَأْتِهِمْ | بِاٰيَةٍ قَالُوْا | لَوْلَا اجْتَبَيْتَهَا ؕ | قُلْ | اِنَّمَآ | اَتَّبِعُ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوهر کله چې ته رانوړې دوی ته | نښه | نو وائي | چې ولې دې دخانه جوړه نه کړه هغه | ورته اووایه | بېشکه | پیروی کوم زه |
| اوکه نه دوی ته هرقسم معجزه اوښایې انو دوی وائي چې ولې دې دغه معجزه دخان نه پیش نکړه | ورته اووایه |

| مَا | يُوْحٰۤى | اِلَيَّ | مِنْ رَّبِّيْ ۚ | هٰذَا | بَصَآئِرُ | مِنْ رَّبِّكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دهغې | چې وحي کولې شي | ماته | اد طرفه د رب زما نه | دا | ادپوهې رڼراکاني دي | ادطرفه درب ستاسو نه |
| زه په هغه لار روان یم | چې خپل رب راته وحي کړې ده | دا ټول ستادرب د طرفنه دلیلونه دي |

| وَهُدًى | وَّرَحْمَةٌ | لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ۝ |
|---|---|---|
| اوهدایت دي | اورحمت دې | ادپاره دهغه قوم چې ایمان راوړي |
| اودهغه خلقو دپاره هدایت اورحمت دې چې مومنان دی |

قوله تعالی:: هٰذَا بَصَآئِرُ مِنْ رَّبِّكُمْ

**قرآن حکیم دَ همیشه دپاره ژوندې او عظیمه معجزه ده.-** داخلق د یوې معجزې او نشانې غوښتونکی دی او چه ته نې نه پیش کوې نو وائی چه څه نښه تا پخپله ولې جوړه نه کړه. د خپل طرف نه دې ولې جوړه نه کړه د آسمان نه دې یوه نښه ولې رانښکله. د آیت نه مراد معجزه او د عادت نه خلاف کاردې لکه چه فرمائی که مونږ اوغواړو نود آسمان نه به معجزه نازل کړو د کومې په لیدو چه به د هغوی ستونه ټیټ شي. دا کافران هم زمونږ رسول ﷺ ته وائی چه د الله تعالی د طرف نه د یوې نښې د حاصلولو کوشش ته ولې نه کوې چه مونږ هغه اووینو او ایمان راوړو. نوالله تعالی فرمائی چه دوی ته اووایه زه د خپل طرف نه څه اقدام نه کول غواړم. زه خود الله تعالی بنده یم ماته چه کوم حکم اوشو د هغې پوره کونکې یم که هغه پخپله څه معجزه رالیګله نو ما پیش کړه که راونی نه لیګله نو زه زور نه شم کولې. هغه ماته دا خبره خودلې ده چه هم دا قرآن د ټولونه لویه معجزه ده په دې کښې د توحید دلائل داسې واضح دی چه پخپله معجزه جوړشوی دی. ﴿هٰذَا بَصَآئِرُ مِنْ رَّبِّكُمْ وَهُدًى وَّرَحْمَةٌ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ۝﴾

| وَاِذَا | قُرِئَ | الْقُرْاٰنُ | فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ | وَاَنْصِتُوْا | لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوهرکله چې | الوستلې کیږی | قرآن | انو غوږ کیږدئ | اهغه ته | اوچپ اوسئ | ښائی چې په تاسو رحم اوشی |
| اوکله چې قرآن پاک لوستې شي نوپه توجو سره نې آورئ | او چپ اوسئ | اد دې دپاره چې تاسو باندې رحم اوشی |

قوله تعالی:: وَاِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ

**دَ امام شاته دَ قرآن باره کښې دَ فقهاؤ موقف.-** کله چه د دې بیان نه فراغت اوشو چه قرآن هدایت او رحمت دې اود خلقو د پوهیدلو د پاره یو څیز دې نواوس ارشاد کیږی چه د دې د تلاوت په وخت کښې چپ اوسیږنی دې د پاره چه د دې احترام او تعظیم اوکړې شی داسې نه لکه څنګه چه به د قریشو کافرانو کول یعنی وئیل به نې چه قرآن پاک مه اورنی او نه نور اوریدو ته پریږدنی. د قرآن پاک لوستلو په وخت کښې چغې صورې وهنې.

خود سکوت دا تاکید د فرض مانځه باره کښې دې او هغه هم په دغه وخت کښې چه کله امام په زوره آواز کښې قراءت کوی. لکه څنګه چه حضور ﷺ فرمائیلی دی کله چه امام مونځ کوی نوچه کله هغه

تکبیروانی نو تاسو هم تکبیروانئ او چه کله هغه قراءت لولی نوتاسو خاموش اوسیږئ (۱) حضرت ابوهریره ﷺ فرمانی چه د دې آیت د نازلیدلونه وړاندې به خلقو په مونځ کښې خبرې کولې نوچه کله دا آیت نازل شو چه چپ شئ او قرآن واورئ نود سکوت حکم ورکړې شو. ابن مسعود ﷺ وانی چه مونږ خلقو به په مانځه کښې یوبل ته سلام وئیلو په دې وجه دا آیت نازل شو. ابن مسعود ﷺ مونځ ورکولو خلق ئې اولیدل چه امام سره پخپله هم قراءت لولی نوچه کله ئې مونځ ختم کړو نو وئې وئیل په تاسو څه شوی دی چه قرآن اورئ نه او پوهیږئ نه سره د دې چه الله تعالی د چپ اوسیدو سره د اوریدو هدایت کړې دې.

زهری ﷫ وانی چه دا آیت د انصارو یو سړی باره کښې نازل شوې (دا آیت مکی دې اود انصاروا سلام قبلولونه اول نازل شوې دې). حضور ﷺ چه به لوستلو نو هغه به هم د حضور ﷺ نه شاته لوستلو. د حضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دې چه حضور ﷺ بالجهر مونځ ختمولونه پس اوفرمائیل چه آیا تاسو کښې چا پخپله هم ما سره سره قرآن لوستلو نو یو سړی اووئیل چه او یارسول الله ﷺ. نو حضور ﷺ اوفرمائیل په ما وئیل څه اوشو چه زه ګورم ماسره سره قرآن لوستلې شی.دې نه پس خلقوپه جهری مونځ کښې امام پسې قراءت کول پریخودل. (۲)

زهری ﷫ وانی په جهری مونځ کښې امام پسې قراءت نه دی کول پکار د امام خپل قراءت هم ستاسو دپاره کافی دې سره د دې چه د هغه آواز تاسو نه اورئ. خو چه جهری مونځ به نه وو نو خلقو به په خپله څله لوستلو خو دا صحیح نه دی چه یو سړې په جهری مونځ کښې امام پسې قراءت کوی. نه دې پټ کوی اونه ښکاره څکه چه الله تعالی فرمائیلی دی چه د قرآن لوستلو په وخت کښې چپ اوسیږئ

**په قراءت خلف الامام کښې اختلاف:-** ① زه وایم چه دا طریقه د علماؤ د یوې ډلې ده چه په مقتدی باندې جهری مونځ کښې دا واجب نه دی چه پخپله هم قرآن لولی د امام د فاتحې په وخت کښې یا غیر فاتحې وخت کښې او د شافعی ﷫ دوه قوله دی په کوم کښې چه یو قول دا هم دې. ②امام ابوحنیفه ﷫ او امام احمد بن حنبل ﷫ وانی چه مقتدی دې هیڅ کله قراءت نه کوی نه په سری مونځ کښې نه په جهری مونځ څکه چه په حدیث کښې وارد دی چه د امام قراءت ستاسو قراءت دې. او هم دغه ډیر صحیح دی. دا مسئله ډیره تفصیلی ده او مختلف فیه ده. امام بخاری ﷫ وانی چه امام پسې قراءت واجب دې که مونځ سری وی که جهری. والله اعلم.چه قرآن کریم لوستلې شی نو چپ اوسیدو سره اورئ یعنی چه کله په فرض مونځ کښې لوستلې شی دا د ابن عباس ﷺ قول دې

طلحه بن عبیدالله بن کریز ﷫ وانی چه ما د عبیدبن عمیر او عطاء بن ابی رباح ﷫ په خپل مینځ کښې په خبرو کښې لیدلې حالانکه بل طرف ته وعظ کیدلو نو ماوئیل چه د الله تعالی ذکر ولې نه اورئ تاسو خو د وعید قابل کیږئ. هغه دواړو زما طرف ته اوکتل او بیا په خپلو خبروکښې اخته شو ما بیا هغوی ته تنبیه ورکړه. هغوی زما طرف ته اوکتل او بیا په خبروکښې اخته شول. ما په دریم ځل خبره سه باره راؤګرځوله نو وئې وئیل دا حکم د مانځه متعلق دې چه امام قرآن لولی او ته مقتدی ئې نو چپ به اوسیږې اورې به ته به نه لولې. مجاهد ﷫ او نور ډیر راویان دا حکم هم د قرآن متعلق ښائی او وانی چه که یو سړې په مانځه کښې نه وی او قرآن لوستلې شی نو بیا په خبروکولوکښې څه حرج نشته. زید بن اسلم ﷫ هم دا مطلب اخلی. مجاهد ﷫ وانی چه دا حکم د مانځه او جمعه د خطبې متعلق دې. ابن جبیر ﷫ وانی چه یوم الاضحی، عیدالفطر یوم جمعه د خطبو او د جهری مونځ

---

[۱] صحیح مسلم کتاب الصلاه باب التشهد فی الصلاه: ٤٠٤، ابوداؤد: ٦٠٤، نسائی: ۹۲۲، ابن ماجه: ٨٤٦، په دې کښې (کله چه قراءت کوی نو چپ شئ)الفاظ شاذ دی.

[۲] احمد: ۲/ ۳٤۱.

متعلق دي د غير جهري مونځ متعلق نه دي. ابن جرير رحمه الله هم دا اختيار کړى دى چه دې نه مراد چپ اوسيدل دى په مونځ او خطبه کښې. او هم دا حکم دې چه خطبه کښې امام پسې چپ اوسيږه او په حديث کښې بالکل هم دا حکم وارد دې. مجاهد رحمه الله دا خبره ډيره بده ګڼلې وه چه کله امام يو آيت خوف يا آيت رحمت اولولي نو خبرې شروع کړى نه بلکه خاموش اوسيږنى په خپله ژبه د خوف او رجا د الفاظو لاندې څه نه دى وئيل پکار. حضور ﷺ فرمائيلي دى چه څوك د قرآن يو آيت په خاموشئ سره واورى نود هغه د پاره دوچنده نيکئ ليکلې کيږى او چه څوك قرآن کريم تلاوت کوى قرآن پاك به د قيامت په ورځ د هغه د پاره نور جوړيږى.(١)

**مسلك حنفي:-** لکه څنګه چه حافظ ابن کثير رحمة الله عليه فرمائيلي دى داحنافو هم دغه مسلک دې چه په امام پسې په جهرى او سرى دواړو مونځونو کښې سورة فاتحه وئيل نه دى پکار (کذ في کتب الحنفية شاه فيصل غفرله)-

| وَاذْكُرْ رَّبَّكَ |
|---|
| او يادوه \| رب خپل |
| او (ائې پيغمبره ﷺ) خپل رب |
| فِىْ نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَّخِيفَةً وَّدُوْنَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ بِالْغُدُوِّ |
| په زړه خپل کښې \| په عاجزئ سره او په ويرې سره \| او کم داوچت آواز نه \| دوينا نه \| په صبا کښې |
| په زړه کښې په عاجزئ او په ويرې سره او په چپ آواز سره چه په زوره نه وى \| د صبا او د |
| وَالْاٰصَالِ وَلَا تَكُنْ مِّنَ الْغٰفِلِيْنَ ۞ اِنَّ الَّذِيْنَ عِنْدَ رَبِّكَ |
| او په بيګاه کښې \| او مه کيږه ته \| دبې خبرانو نه \| بيشکه \| هغه کسان \| چې په نيز د رب ستا کښې دى |
| ماښام په وخت کښې يادوه \| او غافلانو کښې ځان مه شاملوه \| کومې فرښتې چې ستا رب سره دى |
| لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِهٖ وَيُسَبِّحُوْنَهٗ وَلَهٗ يَسْجُدُوْنَ ۞ |
| تکبرنه کوى هغوئ \| دعبادت دهغه نه \| او پاکى بيانوى دهغه \| او خاص هغه ته \| سجدې کوى |
| هغوئ دالله ﷻ دعبادت نه خانونه لوئ نه ګڼرى \| او دهغه تسبيح وائى \| او هغه ته سجدې کوى |

**قوله تعالي::** وَاذْكُرْ رَّبَّكَ فِىْ نَفْسِكَ

**په رو آوازباندې ذکر مستحب دې:-** د الله تعالى حکم دې چه د ورځې په اول کښې او آخرکښې الله تعالى ډير يادونى څنګه چه په دې دواړو وختونوکښې د الله تعالى د عبادت کولو د دې آيت په ذريعه حکم ورکړې شوې دې. چه دنمر ختلو په وخت کښې اودغه شان د ډوبيدلو نه وړاندې د الله تعالى حمد او ثنا کوئې. اودا د معراج په شپه د پنځو مونځونو د فرض کيدونه وړاندې خبره ده. اودا آيت مکى دې. د ﴿غُدُوِّ﴾ معنى ده اول نهار او ﴿الْاٰصَالِ﴾ د اصيل جمع ده لکه ﴿ايمان﴾ چه د يمين جمع ده. بيا حکم اوشوچه خپل رب په زړه سره هم ياد کړنى او په ژبه سره هم، هغه سره رغبت ساتلو سره هم او د هغه نه ويرې سره هم. په اوچت آواز سره نه او دا مستحب دى چه الله تعالى په چغو سره مه يادونى.

(١) ابوداؤد کتاب الصلاه باب من راى القرءاة اذالم يجهر:٨٢٦وهوصحيح، ترمذى:٣١٢، نسائى: ٩٢٠، ابن ماجه:٨٤٨، احمد:٣٠١/٢، ابن حبان: ١٨٤٠شيخ البانى رحمه الله داصحيح ګڼرلي.

د رسول الله ﷺ نه خلقو تپوس اوکړو چه زمونږ رب مونږ ته نیزدې دې که لرې. که نیزدې وی نو چه مونږ په رو آواز سره هغه مخاطب کوو اوکه لرې وی نو چه په زوره آواز سره آواز کوو. نوالله تعالی دا آیت نازل کړو زما بندیګان زما باره کښې تپوس کوی نو هغوی ته اووایه چه زه نیزدې یم که هغوی ما ته آواز کوی نو زه د هغه آواز کونکو دعا اورم.

**قوله تعالی:: وَاذْكُر رَّبَّكَ فِي نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَخِيفَةً وَدُونَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ**

**په اوچت آواز باندې دعا ممنوع ده::** ابوموسی اشعری ﷺ نه روایت دې چه خلقو په یو سفرکښې په اوچت آواز سره دعا کوله نو هغوی ته نبی کریم ﷺ اوفرمائیل اې خلقو په خپلو ځانونوباندې رحم اوکړئی تاسو چرته غائب یا کونړ ته آواز نه کوئې چاته چه آواز کوئې هغه اوریدونکې او نیزدې دې ستاسو د مرئی د شارګ نه هم نیزدې دې. [۱] د دې آیت نه دا هم مراد اخستې شی کوم چه په دې آیت کښې دې چه خپله دعا یا مونځ په دومره اوچت آواز سره مه لولئی او نه په دومره رو آواز سره بلکه د دې دواړو په مینځ کښې دې وی ځکه چه مشرکانو به کله قرآن اوریدلو نو قرآن ته اوقرآن نازلونکي او راوړونکی ته به ئې بدې ردې وئیلې نو الله تعالی حکم اوکړو چه په ډیر اوچت آواز سره قرآن پاک مه لولئی چه مشرکانو ته تکلیف نه وی اونه په دومره رو آواز سره چه ستاسو ملګری ئې هم نه شی اوریدې. په دې آیت مبارك کښې هم دا مضمون دې چه د سحر او ماښام عبادت کښې په اوچت آواز سره مه لولئی او د کم عقلانو نه مه جوړیږئی. مراد دا چه د قرآن اوریدونکی ته حکم ورکړې چه په داسې طریقه سره مونځ او عبادت کوی. اودا خبره بعید ده اویه رو لوستلو د حکم منافی دې یا د دې نه دا هم مراد دی چه دا حکم د مونځ متعلق دې لکه چه څنګه وړاندې تیرشو. دا د مانځه او خطبې متعلق دې اودا خبره ښکاره ده داسې وخت کښې د ذکر کولو نه چپ والې افضل دې که هغه ذکر په رو آواز وی که په تیز آواز. دا خیز چه دې دواړو بیان کړې دې د دې متابعت اونه کړې شو بلکه مقصد دا دې چه بندیګان سحر او ماښام هر وخت په کثرت سره د ذکر د پاره راوچت کړئی چه هغوی یو وخت هم د الله تعالی د ذکر نه غافل پاتې نه شی.

**په عبادت کښې د فرښتو طریقه اختیارول پکار دی::** په دې وجه خود دې ملائکو تعریف شوې دې چه سحر ماښام د الله تعالی په تسبیح کولوکښې غفلت نه کوی. نو فرمائی چه ﴿إِنَّ الَّذِينَ عِندَ رَبِّكَ لَا يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِهِ﴾ د دې فرښتو مثال صرف د دې دپاره بیان کړې شو دی چه بندیګان په کثرت اطاعت کښې د فرښتو اقتداء اوکړی. اولکه څنګه چه په حدیث شریف کښې راغلی دی چه کله الله تعالی د فرښتو سجدې کولو ذکر اوفرمائیلو نو هم داسې سجده ئې زمونږ د پاره هم مشروع اوفرمائیله. په حدیث شریف کښې دی چه تاسو هم د الله تعالی د عبادت د پاره هم داسې صفونه ولې نه تړئی لکه څنګه چه فرښتې د خپل رب په وړاندې صفونه جوړوی. اود ړومبنی صف والا ته اولیت حاصل دې او په صفونو جوړولوکښې صحیح او نیغ صف بندنې ډیر خیال ساتی. [۲] دلته چه کومه د تلاوت سجده ده هغه قرآن پاك د ټولونه ړومبنی د تلاوت سجده ده. د کوم ادا کول چه په تلاوت کونکې اوریدونکی ټولو باندې بالاجماع مشروع ده. د ابن ماجه په حدیث شریف کښې دی چه نبی کریم ﷺ دا د قرآن پاك د سجدو نه ګرځولې ده. [۳]

**(الحمدلله)** د سورة اعراف تفسیر ختم شو.

---

[۱] صحیح بخاری کتاب الجهاد باب مایکره من رفع الصوت فی التکبیر:۲۹۹۲، صحیح مسلم:٤٧٠٤، احمد:٤/٤٠٢.
[۲] صحیح مسلم کتاب الصلاه باب الامر بالسکون فی الصلاه والنهی عن الاشاره بالید: ٤٣٠.
[۳] ابن ماجه کتاب اقامه الصلاه باب عدد سجود القرآن:١٠٥٦.

## (تفسير سوره انفال مدنيه)

په دې کښې پنځه اويا آياتونه دی يوزر شپږ سوه يوديرش کلمات دی او پنځه زره شپږ کم سل حروف دی. والله اعلم.

| آياتونه | | سورت الانفال مدنی دې | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | | |
| ۷۵ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم کونکې دې | | ۱۰ |

يَسۡـَٔلُوۡنَكَ عَنِ الۡاَنۡفَالِ ؕ قُلِ الۡاَنۡفَالُ لِلّٰهِ وَالرَّسُوۡلِ ۚ

تپوس کوی دوی ستانه | په باره د مالونو دغنيمت کښې | اووايه | چې غنيمتونه | الله دپاره دی | او رسول دپاره

دوی ستانه دغنيمتونوباره کښې تپوس کوی ورته اووايه چې داغنيمتونه خودالله او د رسول دپاره دی

فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَصۡلِحُوۡا ذَاتَ بَيۡنِكُمۡ ۠ وَاَطِيۡعُوا اللّٰهَ وَرَسُوۡلَهٗۤ

پس اوويريږئ | دالله نه | اوصلح اوکړئ | په منځ خپل کښې | اوحکم اومنئ | دالله | اودرسول دهغه

نو تاسودالله ﷻ نه اوويريږئ | اوپه خپل مينځ کښې تعلقات ښه کړئ | اود الله ﷻ اودرسول حکم اومنئ

اِنۡ كُنۡتُمۡ مُّؤۡمِنِيۡنَ ۝

که چرې | يئ تاسو | مومنان |

که تاسوپه رښتونی مومنان يئ |

قوله تعالى: يَسۡـَٔلُوۡنَكَ عَنِ الۡاَنۡفَالِ ؕ

**دمال غنيمت احکام اودډې دنفل کولووجه اودنفل تعريف:** -ابن عباس ﷺ وائی (اَلۡنَفَالِ) مال غنيمت ته وائی اوونيلی دی چه سورۀ انفال غزوه بدرکښې نازل شوې دی[1] ابن عباس ﷺ اوونيل چه انفال هغه غنيمت دې چه هغه دهيچا حق نه دې صرف دنبی کريم ﷺ حق دې. ابن عباس ﷺ وائی چه د حضرت عمر بن خطاب ﷺ نه به کله د څه خبرې تپوس کولې شو نو وئيل به ئې چه نه زه اجازت ورکوم او نه منع کوم. بيا ابن عباس ﷺ فرمائی چه په الله تعالى قسم چه الله تعالى نبي کريم ﷺ منع کونکې، حکم ورکونکې د حلال او حرام تشريح کونکې جوړکړې راليږلې وو. قاسم ﷫ وائی چه ابن عباس ﷺ ته يو سړې راغلو اود انفال باره کښې ئې د حضور ﷺ نه سوال اوکړو. حضور ﷺ اوفرمائيل چه انفال دا دې چه يو سړې جنګ کښې بل مړ کړی د هغه اس او وسله د مال غنيمت په توګه واخلی. دې سړی بيا تپوس اوکړونوحضور ﷺ بيا هغه شان جواب ورکړو. بياهغه سوال اوکړونوحضور ﷺ ته غصه ورغله او حضور ﷺ په هغه باندې حمله کولو ته نيزدې وو. بيا ابن عباس ﷺ اوونيل چه د ده مثال خو د هغه سړی دې کوم چه حضرت عمر بن خطاب ﷺ وهلې وو تر دې چه وينه د هغه په پونده او پښه باندې بهيدلې وه. نو هغه سړی وئيل چه آيا ته هم هغه نه يئې چه د حضرت عمر ﷺ بدله الله تعالى تانه اخستې ده. دا سند صحيح دی. ابن عباس ﷺ د نفل تفسير د غنيمت مال سره اوکړو کوم چه په جنګ کښې په زور اخستې شوې مال وی. امام بعضې کسانوته د اصل غنيمت د تقسيم نه پس څه زيات ورکوی او اکثرو فقهاؤ هم د انفال مطلب هم دغه اخذ کړې دې.

---

[1] صحيح بخاری کتاب التفسير سوره الانفال باب قوله تعالى (يسئلونك عن الانفال قل الانفال لله والرسول.....): ٤٦٤٥، صحيح مسلم: ٣٠٢١.

خلقو نبی کریم ﷺ نه دهغه پنځمې حصې باره کښې تپوس اوکړو کومه چه د څلورمې حصې ویسئلونه پس پاتې شي نو دا آیت نازل شو ﴿ یَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْاَنْفَالِ ؕ ﴾ ابن مسعود ﷺ او مسروق ﷺ وائی چه د نفل اطلاق د جنګ په زور سره اخستې شوی مال باندې نه دې بلکه د جنګ صفونه تیارولو نه اول باندې کیږي ځکه چه هغه خود یوقسم زیاتې دې. ابن مبارک ﷺ وائیچه مطلب دا دې چه اې نبی اکرم ﷺ! تا نه خلق د هغه وینځو غلام، سورلئی او سامان وغیره باره کښې تپوس کوی کوم چه بغیر د جنګ نه د مشرکانو نه مسلمانانو ته ملاؤشي نودا د نبی اکرم ﷺ حق دې هغه چه څنګه غواړې خرچ کوی دې دې نه دا نتیجه راوځې چه هغه مال فی انفال ګڼړې. او فئ هغه مال دې کوم چه د کافرانو نه بغیر د جنګ نه حاصل شی. اود نورو خلقو خیال دې چه د سرایا نه کوم مال ملاؤشي هغه انفال دې. یعنی مسلمانان د کافرانو سره د جنګ د پاره تلې وی اوکافران بغیرد جنګ نه خپل مال اومتاع او سامان وغیره پریږدی او اوتختې اودا مال د مسلمانانو لاس ته راغلې وی او نبی کریم ﷺ دې لښکر سره پخپله نه وی. دا هم ونیلې شوی دی چه د دې نه مراد لښکر ته د هغوی د کارګذارئی په عوض کښې یا د هغوی د حوصلې زیاتولو په خاطر د وخت امام هغوی ته د عام تقسیم نه څه زیات مال ورکړې.

**د ایت د نازلیدو مختلف سببونه:**:سعدابن ابی وقاص ﷺ وائی چه په جنګ بدر کښې زما رور عمیر قتل کړې شوې وو نو ما هم سعید بن العاص قتل کړو اود هغه توره مې راواخسته د کومې نوم چه (ذوالکتیفه) وو.هغه مې حضور ﷺ له راوړله. حضرت محمد ﷺ اوفرمائیل په قبضه کښې اخستې شوی مال کښې اوغورزوه راشه. زه د ورغورزولو د پاره تللم او هغه وخت زما د زړه په حال یو الله خبر وو. یو د رور قتل بل چه څه مې اخستې وو هغه هم رانه واخستلې شو. خو زه لږ شان لرې تلې ووم چه د سورۀ انفال دا آیت نازل شو. نو رسول الله ﷺ ماته اوفرمائیل چه لاړشه او خپل اخستې شوې مال واخله ([1]) دسعدبن مالک ﷺ نه روایت دې چه ماووئیل یارسول الله ﷺ! الله تعالی نن ماته د مشرکانو د هزیمت نه شفا راکړه اوس دا توره ماته راکړه. نو هغوی ﷺ اوفرمائیل چه دا توره نه ستا ده نه زما ده دا کیږده. ما کیخوده او واپس شوم او په زړه کښې مې اووئیل چه ماته ملاؤ نشوه نو یوداسې سړي به ئې واخلی چه زما نه به زیات حقدار نه وی اونه به چا داسې مصیبت زغملې وی لکه چه ما زغملې دې نو ناځاپې چا ماته د شانه آواز اوکړو. زه حضور ﷺ له لاړم او عرض مې اوکړو یا رسول الله ﷺ! آیا وحی نازله شوه حضور ﷺ اوفرمائیل چه تا ماته توره غوښتې وه خو هغه زما نه وه چه تاته مې درکړې وه. اوس الله تعالی دوحی په ذریعه ماته راکړه نو زه ئې اوس تاته درکوم. الله تعالی دا آیت نازل کړو﴿ یَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْاَنْفَالِ ؕ قُلِ الْاَنْفَالُ لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلِ ۚ ﴾ ([2])

**د سعد ﷺ خصوصیت:**:سعد ﷺ وائی چه زما باره کښې څلور آیاتونه نازل شوی دی. په جنګ بدر کښې په یوه توره ما قبضه کړې وه. زه نبی کریم ﷺ له راغلم او عرض مې اوکړو دا توره ماته راکړه. حضور ﷺ اوفرمائیل چه د کوم ځائ نه دې اخستې ده هم هلته ئې کیږده.حضور ﷺ دوه ځل اوفرمائیل ما بیا درخواست اوکړونوحضور ﷺ بیا دغه شان اوفرمائیل.نود انفال والا آیت نازل شو. اوما سره متعلق دویم آیت دې ﴿وَوَصَّيْنَا الْاِنْسَانَ بِوَالِدَيْهِ حُسْنًا ؕ وَاِنْ جَاهَدٰكَ لِتُشْرِكَ بِيْ مَا لَيْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ فَلَا تُطِعْهُمَا ؕ اِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ فَاُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝﴾ دریم آیت ﴿اِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْاَنْصَابُ وَالْاَزْلَامُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ فَاجْتَنِبُوْهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ۝﴾ او څلورم آیت وصیت.([3])

---

[1]) احمد:۱/۱۸۰.

[2]) ابوداؤد کتاب الجهاد باب فی النفل :۲۷٤۰، صحیح، ورواه مسلم:۱۷٤۸، من طریق آخر، ترمذی:۳۰۷۹، احمد:۱/۱۷۸.

[3]) صحیح مسلم کتاب فضائل الصحابه باب فی فضل سعدبن ابی وقاص ﷺ:۱۷٤۸، مسندالطیالسی:۲۰۸.



مالك بن ربیعه ﷺ وائی چه د بدر په ورځ د ابن عائذ توره زما په قبضه کښې راغله د کوم نوم چه مرزبان وو. کله چه رسول الله ﷺ حکم ورکړو چه خپل خپل لوټ شوې مال کیږدئی نو ما هم دا توره کیخوده اود رسول الله ﷺ عادت شریف وو چه چا به څه اوغوښتل نو سوال به ئې نه ردکولو. ارقم دا توره لیدو سره حضرت محمد ﷺ نه اوغوښتله نو حضور ﷺ ورکړه.

**دَ آیت دَ نازلیدو دویم سبب:**-ابوامامه ﷺ وائی چه د انفال باره کښې ما د عباده ﷺ نه سوال اوکړو نو هغه اووئیل چه زمونږ سره د بدر مجاهدین هم وواودا آیت هغه وخت نازل شو کله چه دانفال باره کښې زمونږ اختلاف پیدا شو او مونږ په خپل مینځ کښې تیزی او ترخې خبرې کولې. نو الله تعالی خبره زمونږ دلاس نه واخستله او حضور ﷺ له ئې ورکړه. اوس نبی کریم ﷺ دا مال غنیمت په مسلمانانوکښې برابر برابر تقسیم کړو. عباده بن صامت ﷺ وائی چه په بدرکښې رسول الله ﷺ سره شریك ووم الله تعالی دښمن ته شکست ورکړو (۱) نو اوس یوه ډله دښمنانوپسې شوه او تختیدونکې ئې قتل کړل او یوه ډله په لښکر باندې راپریوتل او هغوی ئې راګیرول او یوې ډلې حضور ﷺ راګیرکړې وو اود حضور ﷺ حفاظت ئې کولو چه چرته دښمن ورته نقصان اونه رسوی. کله چه شپه شوه اود غنیمت مال ئې تقسیم کولو نو چه کومو خلقو غنیمت راغونډ کړې او محفوظ کړې وو وئیل چه ددې صرف هم مونږ حقدار یو او څوك چه دښمن پسې تلی وو د هغوی وینا وه چه هم مونږ د دښمن د ماتې سبب یو په دې وجه صرف هم مونږ حقدار یو. اوچا چه د حضور ﷺ حفاظت کړې ووهغوی وئیل چه مونږ ته د دې خبرې سخته اندیښنه وه چه حضور ﷺ ته نقصان اونه رسی. په دې وجه مونږ په یو ډیر اهم کار کښې مصروف وو نو دا آیت نازل شو چه انفال خود الله تعالی اود هغه درسول ﷺ دې نو د الله تعالی نه اوویریږئی او په خپل مینځ کښې صلحه اوساتئی. نو حضور ﷺ مسلمانانوکښې د دې تقسیم اوکړو اود نبی کریم ﷺ عادت مبارك ووچه کله به په دښمن باندې وو نو هم په هغه ورځ به ئې څلورمه حصه مال غنیمت تقسیم کولو او چه کله به واپس کیدو نو د دریمې حصې تقسیم به ئې کولو اود څان د پاره به ئې نامناسب ګڼړلو.

(۲) ابن عباس ﷺ وائی چه د جنګ بدر په ورځ نبی اکرم ﷺ اوفرمائیل چه څوك داسې داسې کارنامه اوکړی نوداسې داسې انعام به ورکولې شی. اوس ځوانانو د خپل کارنامو کوشش شروع کړو او بوډاګانو مورچې او جهنډې سنبالې کړې او چه کله د غنیمت مال راغلو نو چه د چا د پاره کومه وعده کړې شوې وه د هغې اخستلو د پاره راغله. بوډا ګانو وئیل چه تاسوله په مونږ باندې ترجیح نشته مونږ ستاسو ملاتړ ولاړ وو که تاسو ته هزیمت کیدو نو هم مونږ سره به پناه ملاویدله. خبره زیاته شوه جګړه شروع شوه نو د انفال آیت نازل شو. (۳) ابن عباس ﷺ فرمائی چه د بدر په ورځ حضور ﷺ فرمائیلې وو چه چا څوك قتل کړو نو هغه ته به د مقتول دمال نه دا انعام وی او که څوك چه ئې قیدی کړی نو هغه ته به دا انعام وی. نو ابوالیسر ﷺ دوه قیدیان اونیول او وئې وئیل چه یارسول الله ﷺ! تاسو وعده کړې وه نو سعد بن عباده ﷺ اووئیل چه یارسول الله ﷺ! که چرې تاسو داسې ورکړئی نوستاسود نور صحابه کرامو د پاره به هیڅ هم پاتې نه شی. مونږ چه دا په میدان جنګ حصارشوې وو نود هغې سبب دا نه وو چه زمونږ د مال یا د معاوضې لالچ وو او نه دا چه مونږ د دښمن نه ویریدو. مونږ خو دلته صرف د دې د پاره حصارشو چه چرته په تاسو باندې د شانه حمله اونه شی. دمقامی حفاظت هم سخت ضرورت وو.

---

(۱) احمد:۳۲۲/۵،دارمی:۲۲۹/۲، حاکم:۱۳٦/۲، بیهقی:۲۹۲/۲، ابن ماجه:۲۸۵۲وهوصحیح.

(۲) ترملی کتاب السیر باب فی النفل: ۱۵٦۱، ابن ماجه:۲۸۵۲مختصراًوهوصحیح، احمد/۳۲۳/۵، حاکم:۱۳۵/۲، ابن حبان:۴۸۵۷، بیهقی:۲۵۲/٦.

(۳) ابوداؤد کتاب الجهاد باب فی النفل :۲۷۳۷،وسنده صحیح، ابن حبان:۵۰۹۳، حاکم:۱۳۱/۲ امام حاکم دیګ روایت ته صحیح وئیلی دی او امام ذهبی دَ دیګ موافقت کړیګ دیګ.

غرض دا چه څه جگړه شروع شوه نو دا آیت نازل شو(۱) دالله تعالی ارشاد دی ﴿وَاعْلَمُوا أَنَّمَا غَنِمْتُم مِّن شَيْءٍ فَأَنَّ لِلَّهِ خُمُسَهُ﴾ یعنی چه کوم مال غنیمت تاسو ته ملاؤشوی دی په هغې کښې پنځمه حصه د الله تعالی ده. امام ابوعبید رحمه الله په خپل کتاب "الاموال الشرعیه" کښې لیکلی دی. انفال د غنیمت ټول مال ته وائی اوهرهغه مال چه جنګ کونکونه مسلمانانوته ملاؤ شی. په انفال باندې خود ټولونه اول دحضور ﷺ حق دی لکه چه الله تعالی په قرآن پاك کښې فرمانیلی دی. حضور ﷺ د بدر په ورځ د دې تقسیم د الله تعالی د هدایت پنځمه حصه ویستلونه بغیرکړې وو لکه چه مونږ دسعد رضی الله عنه په حدیث کښې ذکر کړې دی. بیا دې نه پس د خمس آیت نازل شو نو اولنی آیت منسوخ شو.د ابن زید بیان دی چه منسوخ شوی نه دی بلکه هغه هم قائم دی ابوعبید وائی چه د دې باره کښې نور احادیث هم دی.

**انفال ټول مال غنیمت ته هم وائی::** انفال ټول مال دغنیمت ته وائی خو په دې کښې خمس یعنی پنځمه حصه د حضور ﷺ د اهل د پاره مخصوص ده لکه چه په قرآن پاك کښې دی او په حدیث کښې دی. انفال د عربو په کلام کښې هر هغه احسان ته وائی کوم چه محسن صرف د سلوك په وجه کړې وی او په هغه باندې احسان کول واجب نه وی. هم دغه هغه مال دی کوم چه الله تعالی د مسلمانانود پاره حلال کړې دی. اودا هغه څیز دی چه زمونږ مسلمانانود پاره مخصوص شوې دی. د مسلمانانو نه علاوه په نورو امتونوکښې د غنیمت مال حلال نه وو. رسول الله ﷺ فرمانیلی چه زه نبی د خمس حقدار جوړکړې یم او مانه وړاندې چاته خمس نه وو ورکړې شوې. (۲)

**د مالونو دتقسیم څلور صورتونه::** ابوعبید رحمه الله وائی که امام د فوځ څه کسانو ته څه انعام ورکړی چه د هغوی د مقرر حصې نه علاوه وی نو هغې ته نفل یا انفال وائی اودا د هغه د کارنامې او په دښمن باندې د زوره ورې حملې په لحاظ ورکولې شی.دا انفال کوم چه د امام د طرف نه د هغه د ښه کارنامې په توګه ملاویږی په څلورو طریقو سره وی اوهره طریقه په خپل ځائ دبلې طریقې نه جداده. یو د مقتول لوټ کړې شوې مال او اسباب ددې نه هیڅ پنځمه حصه نه شی ویستلې. دویمه هغه حصه چه د پنځمې حصې د ویستلو نه پس ورکولې شی. مثلاً امام یو ووړکې غوندې لښکر دښمن پسې ورواستوی او هغوی د غنیمت مال راوړو واپس شو نو امام د دې نه لښکر ته څلورمه یا دریمه د اختیار په توګه تقسیم کړی. دریمه هغه طریقه چه د خمس نه نې راوباسی باقی تقسیم کونکې.د دې نه د اختیار او کارنامې په وجه چاته څومره مناسب ګڼړی ورکړی او باقی تقسیم کړی.څلورم صورت دا چه د ټول غنیمت نه نفل ورکړی وړاندې د دې نه د خمس ویستلو اودا د مشکیانو، شپونکو د اسونو د خدمت کونکو او نورو مزدورانو حق وی. غرض دا چه په څو قسمه د دې تقسیم کیږی.

**د امام شافعی رحمه الله رائې::** امام شافعی رحمه الله وائی چه د مال غنیمت نه د پنځمې حصې ویستلونه وړاندې مجاهدینوته د مقتولینو کوم سامان او مال او متاع ورکولې شی هغه په انفال کښې داخل دی. دویمه وجه دا ده چه د حضور ﷺ د هغه پنځمې حصې چه کومه پنځمه حصه وه د هغې نه چه به رسول الله ﷺ چاته او څومره غوښتله ورکوله به نې دا هم نفل دې. نو امام له پکاردی چه د دښمنانو کثرت اود مسلمانانو قلت اودداسې قسم ضروری مواقعو خیال ساتلو سره د سنت طریقې تابعداری اوکړی که داسې مصلحت مخې ته نه وی نو نفل ویستل ضروری نه دی. دریمه وجه دا ده چه امام یوه ډله د کافرانو د جنګ د پاره لیږی او هغوی ته وائی چه کوم سړې کوم څیز حاصل کړی د هغې نه پنځمه حصه ته جدا کړه اوباقی واخله خو چه دا خبره د جنګ دتلونه وړاندې د خپل مینځ په رضامندنې سره

---

(۱) مصنف عبدالرزاق:۹۴۸۳.

(۲) صحیح بخاری کتاب التیمم باب ۱، ۳۳۵، صحیح مسلم:۵۲۱.



مقرر شوي وي خود ده په دې بیان کښې کوم چه اوکړو د بدر د غنیمت نه پنخمه حصه نه وه ویستلې شوې په دې کښې د اعتراض گنجائش شته. حضرت علی ﷺ فرمائیلي وو چه دوه اوبنې خو هغه دی چه کومې دبدر په ورخ د پنخمې حصې نه هغه ته ملاؤشوې وې. (١) ماددې پوره بیان په "کتاب السیرة" کښې کړې دې.

**هر کار کښې د تقوی اودخپل ځان د اصلاح ضرورت دې::** د الله ﷻ قول دې. ﴿فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَصْلِحُوْا ذَاتَ بَیْنِکُمْ﴾ یعنی په خپلو کارونو کښې د الله تعالی نه اوویرېږئ او په خپل مینځ کښې په صلحه سره اوسیږئ. مه په یو بل باندې ظلم کوئ او مه دښمنان جوړیږئ. الله تعالی چه تاسو ته کوم هدایت او علم درکړې دې آیا دا د هغه مال نه بهتر نه دې د کوم د پاره چه تاسو جنګیږئ.د الله تعالی اود هغه د رسول ﷺ اطاعت کوئ. نبی کریم ﷺ چه کوم تقسیم کوی هغه د الله تعالی د ارادې برابر کوی.د رسول الله ﷺ تقسیم د عدل اوانصاف وی. سدی رحمه الله وائی د ﴿وَاَصْلِحُوْا ذَاتَ بَیْنِکُمْ﴾ معنی ده چه په خپل مینځ کښې جنګ جګړې مه کوئ او کنځلې هم مه کوئ.

**د دو امتیانو د قیامت خبرې::** حضرت انس ﷺ فرمائی چه یو ځل مونږ نبیٔاکرم ﷺ اوکتلو چه هغوی ﷺ مسکې کیدو نوحضرت عمر ﷺ تپوس اوکړو یارسول الله ﷺ! کوم څیز د خندا سبب شو؟ فرمائی چه زما دوه امتیانو د الله تعالی په وړاندې په زنګنونو اودریدل. یو وئیل چه اې ربه! ده په ما باندې ظلم کړې دې زه بدله غواړم. الله تعالی فرمائی چه د خپل ظلم بدله ورکړه. ظالم جواب ورکوی چه یاالله اوس زما څه نیکی پاتې نه شوه چه زه نې دله په بدله کښې ورکړم. نو هغه مظلوم وائی چه اې الله زما د ګناهونو بوج په هغه باندې ورباركړه. دې وینا سره حضور ﷺ ژړه غونې شو او ونې فرمائیل چه هغه به ډیره سخته ورخ وی. خلق به د دې خبرې حاجتمند وی چه د خپلو ګناهونو بوج د چا په سر ورواچوی. اوس به الله تعالی د انتقام اخستونکی ته اوفرمائی چه نظر اوچت کړه او جنت طرف ته اوګوره هغه به سر اوچتوی او جنت ته به ګوری او وائی به چه اې ربه! دې کښې خو د سرو زرو او سپینو زرو محلونه دی کوم چه د مرغلرونه جوړ دی. اې ربه! دا محل د کوم نبی د صدیق اوشهیددې؟ الله تعالی به فرمائی چه څوك د دې قیمت ادا کولې شی هغه ته به نې ورکوم. هغه عرض اوکړی ربه! څنګه؟ الله تعالی جل شانه به فرمائی چه ته خپل رور معاف کړه هغه به وائی اې ربه مامعاف کړې دې الله تعالی به اوفرمائی چه اوس تاسو دواړه د یوبل لاس اونیسئ او جنت کښې داخل شئ. دې نه پس حضور ﷺ اوفرمائیل د الله تعالی نه اوویرېږئ خپل مینځ کښې صلحه قائم کړئ څکه چه د قیامت په ورځ الله تعالی هم د مومنانو په خپل مینځ کښې صلحه کونکې دې. (٢)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِنَّمَا | الْمُؤْمِنُونَ | الَّذِينَ | إِذَا | ذُكِرَ اللَّهُ |
| بیشکه | چې مومنان | هغه کسان دی | کله چې | یاد کړې شی الله |
| مومنان هغه کسان دی چې کله دالله ذکر واوری نو | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَجِلَتْ | قُلُوبُهُمْ | وَإِذَا | تُلِيَتْ | عَلَيْهِمْ | آيَاتُهُ | زَادَتْهُمْ |
| نواوویرېږی | زړونه دهغوی | اوهرکله چې | الوستې کیږی | په هغوی | آیتونه دهغه | نو زیاتوی هغوی |
| زړونه ئې اوویرېږی او چې کله پرې دهغه آیاتونه اولوستې شی ...........نو د هغوی | | | | | | |

١) صحیح بخاری کتاب فرض الخمس باب فرض الخمس: ٣٠٩١، صحیح مسلم: ١٩٧٩.
٢) حاکم: ٥٧٦/٤، الدرمنثور: ٢٩٦/٣.

| إِيمَانًا | وَعَلَىٰ رَبِّهِمْ | يَتَوَكَّلُونَ ۝٢ | الَّذِينَ | يُقِيمُونَ | الصَّلَوٰةَ |
|---|---|---|---|---|---|
| په لحاظ دايمان سره | اوپه رب خپل باندې | اهغوئ بهروسه کوي | هغه کسان دي | چې قائموي | مونځ |
| ايمان پرې نورهم مضبوط شي او په خپل رب باندې بهروسه کوي | | | ادا هغه خلق دي چې دمونځونو پابندي کوي | | |

| وَمِمَّا | رَزَقْنَٰهُمْ | يُنفِقُونَ ۝٣ | أُولَٰٓئِكَ | هُمُ | الْمُؤْمِنُونَ |
|---|---|---|---|---|---|
| اودهغه مال نه | چې ورکړې دې مونږ هغوئ ته | خرچ کوي | دغه کسان چې دي | هم دوي | مومنان دي |
| او مونږ چې ورته څه ورکړي دي دهغې نه (دالله ﷻ لار کښې) خرچ کوي ا.........نو دغه کسان | | | | | |

| حَقًّا | لَّهُمْ | دَرَجَٰتٌ | عِندَ | رَبِّهِمْ | وَمَغْفِرَةٌ | وَرِزْقٌ | كَرِيمٌ ۝٤ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| په حقه سره | دي د پاره د هغوئ | درجې | په نيز | درب دهغوئ | اوبښنه ده | اورزق دې | د عزت |
| په رښتيا مومنان دي ا دوئ دپاره دخپل رب سره لوئ درجې دي او بخشش اودعزت رزق دې | | | | | | | |

**قوله تعالى::إِذَا ذُكِرَ اللَّهُ وَجِلَتْ قُلُوبُهُمْ**

**دَ ايمان حقيقت اودَ اهل ايمان صفات.**-منافقان چه به کله د مونځ فريضه کونکې ښکاره کيدل نود قرآن آياتونه به يو ذره د هغوی په زړونو اثر نه کوی. نه د الله تعالى په آياتونوباندې ايمان راوړی، نه په الله تعالى باندې توکل کوی، نه مونځ کوی چه کله کورکښې وی اونه د خپل مال زکوة ورکوی. الله تعالى خبرورکوی چه مؤمن داسې نه وی.

**دمؤمنانو اول صفت د الله ﷻ ذکرسره زړونه ويريږی:** :دمؤمنانوصفات پدې آيت کښې داسې فرمائی چه کله هغوی قرآن پاك لولی نو د الله تعالى د ويرې نه د هغوی زړونه رچيږی. کله چه د هغوی په وړاندې آياتونه تلاوت کولې شی نو د تصديق کولو په وجه د هغوی ايمان نور هم زياتيږی او هغوی د الله تعالى نه علاوه په بل چا باندې يقين نه کوی. د مؤمن حقيقی پيژندګلو هم دغه ده چه په يو؛ معامله کښې دالله تعالى نوم په مينځ کښې راشی نودهغوی زړونه رچيږی اود هغه د حکم تعميل کوی او دهغه دمنع کړې شوی خبرونه منع کيږی لکه چه فرمائی که د مؤمن سړی نه څه کار د ګناه اوشی يا هغوی د حدودونه وړانديوالې اوکړو نو زر هغوی ته د الله تعالى خيال راځی اوهغوی د خپلو ګناهونونه استغفارغواړی اودالله تعالى نه علاوه د ګناهونومعاف کونکې دې څوك. که په غلطئی سره ګناه اوشی نو باربار اصرارنه کوی ځکه چه هغوی پوهه خلق دی. اوفرمائی چه چا سره د الله تعالى د مخامخ کيدو ويره وی خپل نفسانی خواهش پوره کولو د ناجائز طريقې نه منع پاتې شو نو جنت په حقيقت کښې هم دهغه حق دې. سدی رحمه الله دمؤمن سړی تشريح داسې کوی چه هغه يوداسې سړې دې چه د ګناه اراده کوی نوهغه ته ونيلې شی چه د الله تعالى نه اوويريږه نود هغه زړه رچيږی. ام درداء رضی الله عنها وائی چه زړه هم دالله تعالى د ويرې نه درزيږی اوپه تن اوبدن کښې يودرد وی نو هم دغه وجه ده چه زغونې زبريږی. کله چه دا حالت شروع شی نو بنده له پکار دی چه دغه وخت کښې د الله تعالى نه د خپل مقصد دعا اوغواړی ځکه چه د داسې وخت دعا قبليږی.

**دويم صفت قران کريم اوريدو سره ايمان زياتيږی:** :ارشاد کيږی چه دقرآن پاك په اوريدو د هغوی ايمان زياتيږی. لکه چه فرمائی کله چه يوسورة نازليږی نو څوك وائی چه دې آيت سره ستاسو نه د چا ايمان زيات شو. نو خبره دا ده چه د هغوی ايمان زياتيږی چه څوك د اول نه مسلمان وی اود جنت زيرې هم د هغوی په حق کښې دې. امام بخاری رحمه الله او نورو ائمه حضراتو هم د دې نوعيت د آياتونونه استدلال کړې دې چه په ايمان کښې زياتې اوکمې کيدې شی لکه څنګه چه د جمهورو آئمو مذهب دې

بلکه ونیلې شوی دی چه د ډیرو زیاتو انمو حضراتو هم په دې باندې اجماع ده. لکه شافعی رحمه الله، احمد بن حنبل رحمه الله او ابوعبید رحمه الله اولکه څنګه چه مونږ دبخاری شریف په شرح کښې بیان کړی دی.

**دریم صفت توکل علی الله::** ﴿ وَعَلٰی رَبِّهِمۡ یَتَوَكَّلُوۡنَ﴾ یعنی د دې نه سوا د چا نه امید نه ساتی. خپله پناه همدا ګرځوی که څه غواړی نو هم دهغه نه غواړی اوپه هره خبره کښې هم دهغه طرف ته ښیتیږی. پوهیږی چه هغه څه غواړی نو هم هغه به کیږی اوچه څه نه غواړی نوهغه به نه کیږی.هغه وحده لاشریك دې. متصرف فی‌الملك دې. دهغه د حکم نه پس دبل چا حکم نشته. هغه سریع الحساب دې.سعیدبن جبیر رحمه الله فرمائی چه توکل د ایمان خاصه ده.

**څلورم اوپنځم صفت ، مؤمنان د مونځ پابندی کوی اوانفاق فی سبیل الله کوی::** ﴿الَّذِیۡنَ یُقِیۡمُوۡنَ الصَّلٰوةَ وَمِمَّا رَزَقۡنٰهُمۡ یُنۡفِقُوۡنَ﴾ دمؤمنانو د عقیدې ذکرکولونه پس دهغوی د اعمالوخبرداری ورکولې شی چه هغوی مونځ کوی او خلقو ته ورکړه کوی. دا دواړه اعمال داسې زبردست دی چه په ټولو د خیر اعمالوباندې مشتمل دی. اقامت الصلوة دالله تعالی دحقونو نه دې.اقامت الصلوة وانی پخپل وخت کښې د مانځه پابندی کولوته. اودا چه په اودس کښې مخ لاس پښې په ښه شان سره وینځلې شوې وی. رکوع او سجدې د ارکانوتعدیل سره ادا کړې شوې وی. د قرآن پاك تلاوت دهغې د آدابوسره وی. په نبی کریم ﷺ باندې دروداوتشهدوی‌نوداوې اقامت الصلوة کوم چه د﴿ یُقِیۡمُوۡنَ الصَّلٰوةَ﴾ مفهوم دې. اود﴿یُنۡفِقُوۡنَ﴾ مطلب دې چه څه الله تعالی درکړی دی اود زکوة قابل وی نو زکوة ورکړه او چه هرڅه هم دی خلقو ته ورکړه راورکړه کوه. د بندیګانو واجب او مستحب حقونه اداکوه. اوکه الله تعالی درکړی نود ټولو امدادکوه څکه چه ټول خلق د الله تعالی عیال دی. الله تعالی ته د ټولونه هغه بنده خوښ دې چه مخلوق ته د ټولونه زیاته نفع رسونکې وی. ستاسواعمال دالله تعالی دطرف نه تاسوسره لکه چه د امانت په توګه دی اوډیر زر ستاسو مال تاسونه جداکیدونکې دې. په دې وجه دې سره محبت نه دی‌کول پکار.

﴿اُولٰٓئِكَ هُمُ الۡمُؤۡمِنُوۡنَ حَقًّا﴾ په دې صفوتونو باندې چه څوك متصف وی هم هغه حقیقی مؤمن دې.

حارث بن مالك رضی الله عنه حضور ﷺ له راغلونو هغوی ﷺ اوفرمائیل حارث! سحر څنګه تیرشو؟ حارث رضی الله عنه اووئیل د یو حقیقی مؤمن په حیثیت سره. حضور ﷺ اوفرمائیل په ښه پوهه سره وایه د هر څیز یو حقیقت وی. ستا د ایمان څه حقیقت دې اوښایه. نو حارث رضی الله عنه اووئیل د دنیا د محبت نه ما ډډه کړې ده. د شپې پاسم او عبادت کوم د ورځې د روژې په وجه تږې اوسیږم او خپل خان داسې ګڼړم لکه چه زما په وړاندې د الله تعالی عرش کولاؤ شوې وی اوزه جنتیان په خپل مینځ کښې ملاقات کونکې وینم او دوزخیان په تکلیف کښې راګیروینم. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل او حارث! ته د ایمان حقیقت ته اورسیدلې. په دې باندې د قائم پاتې کیدو کوشش کوه. دا حضور ﷺ درې خل اوفرمائیل[1] قرآن پاك د عربیه ژبه کښې نازل کړې شویدې اودحقًالفظ ادبی حیثیت لری لکه چه وئیلې کیږی﴿فلان سید حقًا﴾ یعنی فلانکې حقیقی سردار دې سره د دې چه په قوم کښې نورسرداران هم وی او فلانکې حقیقی سوداګردې او نور سوداګرهم وی او فلانکې حقیقی شاعر دې سره د دې چه نور هم ډیر شاعران وی.

**دمؤمن داخرت حکم::** ﴿لَهُمۡ دَرَجٰتٌ عِنۡدَ رَبِّهِمۡ﴾ یعنی په جنت کښې به هغوی ته لوئی لوئی درجې ملاویږی. لکه چه فرمائی الله تعالی سره د هغوی لوئې درجې دی او چه هغوی څه عمل کوی الله تعالی د هغې نه خبردې. الله تعالی به د هغوی ګناهونه معاف کړی اود هغوی نیکئی به قبولې کړی. په جنتیانوکښې د بعضو درجې دبعضو نه اوچتې دی. د پورته والا به د پورته نه لاندې درجووالا ته ګوری او فخر او غرور به نه کوی. دلاندې والا به بره والا ته ګوری اوحسد به نه کوی.په مسلم او بخاری شریف کښې دی

[1] المعجم الکبیر:۳۳۶۷، شعب الایمان: ۱۰۵۹۱، مسندعبد بن حمید:٤٤٤، مجمع الزوائد:۵۷/۱.

رسول الله ﷺ فرماني د عليين والا ته به لانديني خلق داسې ګورى لکه څنګه چه تاسو د اسمان په مخ ستورو ته ګورئ. خلقو تپوس اوکړو يا رسول الله ﷺ! آيا دا به د انبياؤ مقام وى او بل چاته به دا نه ملاويږي؟حضور ﷺ اوفرمائيل چه ولې نه. په الله تعالى باندې قسم هغه خلق چه ايمان ئې راوړې اود رسولانو تصديق ئې کړې هغوى هم د دې حقداردى([1]) نبى کريم ﷺ اوفرمائيل چه جنتيان به د بره جنت والا ته داسې ګورى لکه د آسمان په مخ باندې ستورى او ابوبکر صديق رضی الله عنه او حضرت عمر رضی الله عنه هم د دوى نه دى هغوى ته به هم دا عزت ملاويږي.([2])

كَمَآ | اَخْرَجَكَ | رَبُّكَ | مِنْۢ بَيْتِكَ | بِالْحَقِّ

(د غنيمت معامله داسې ده)لکه چې | راايستلې وې ته | رب ستا | د کورستا نه | په حقه سره

لکه څنګه چې ته خپل رب د يو مصلحت په بناء د خپل کور نه راوويستلې

وَاِنَّ | فَرِيْقًا | مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ | لَكٰرِهُوْنَ ۝ | يُجَادِلُوْنَكَ

او بيشکه | يوه ډله | د مومنانونه | خامخا ناخوښه وه | جګړه ئې کوله تا سره

اودمسلمانانو يوې ډلې ته داخبره ډيره ګرانه ښکاريده | هغوئ تاسره په يوه حق خبره کښې جګړه کوله

فِى الْحَقِّ | بَعْدَ مَا | تَبَيَّنَ | كَاَنَّمَا | يُسَاقُوْنَ

ددې حق په معامله کښې | روستو دهغې نه | چې صفا ښکاره شوې وو | لکه چې ابوتللې کيږي هغوئ

حالانکه هغه حق ښکاره شوې وو | او داسې جګړه ئې کوله لکه چې هغوى مرګ طرف ته راښکلې شى

اِلَى الْمَوْتِ | وَهُمْ | يَنْظُرُوْنَ ۝ | وَاِذْ يَعِدُكُمُ | اللّٰهُ | اِحْدَى

مرګ ته | او دوى ورته | ګورى | او کله چې وعده کوله تاسو سره | الله | ديوې

.................. او هغوئ ورته(په سترګو) ګورى | اوهغه موقع ياده کړئ چې الله ﷻ درسره په

الطَّآئِفَتَيْنِ | اَنَّهَا | لَكُمْ | وَتَوَدُّوْنَ | اَنَّ | غَيْرَ ذَاتِ الشَّوْكَةِ

د دوو ډلو | چې بيشکه هغه | ستاسو د پاره ده | اوتاسوخوښوله | چې بيشکه | بې ازغى ډله

دوو ډلو کښې ديوډلې وعده اوکړه | چې هغه به تاسو ترلاسه کړئ | اوتاسو دا خوښوله چه کومه ډله

تَكُوْنُ | لَكُمْ | وَيُرِيْدُ | اللّٰهُ | اَنْ يُّحِقَّ | الْحَقَّ | بِكَلِمٰتِهٖ

وى دې | تاسولره | اوغوښتله | الله | چې ثابت کړى | حق | په فرمانونو خپلو سره

کمزورې بې وسلې وه هغه درباندې پيښه شى | اوالله ﷻ ته منظوره وه چې پخپل حکم سره حق ثابت کړى

وَيَقْطَعَ | دَابِرَ | الْكٰفِرِيْنَ ۝ | لِيُحِقَّ | الْحَقَّ | وَيُبْطِلَ

اوپريکړى | بيخ | د کافرانو | دپاره ددې چې حق ثابت کړى | حق | او چې باطل ثابت کړى

اود کافرانو جرړې ختمې کړى | .................. چې حق ښکاره کړى | او باطل

---

[1]) صحيح بخارى کتاب بدء الخلق باب ماجاء فى صفه وانها مخلوقه:۳۲۵٦، صحيح مسلم:۲۸۳۱، ابن حبان:۷۳۹۳.

[2]) ابوداؤد کتاب الحروف والقراءات باب:۳۹۸۷، بتصرف يسير، ترمذى:۳٦۵۸، احمد:۲۷/۳، مسندابى يعلى:۱۱۳۰.



| الْبَاطِلَ | وَلَوْ | كَرِهَ | الْمُجْرِمُونَ ﴿٨﴾ |
|---|---|---|---|
| باطل | اګرکه | بدګنړی | مجرمان |
| ختم کړی | اګر که مجرمان نې نهٔ خوښوی | | |

**قوله تعالى:: وَإِذْ يَعِدُكُمُ اللَّهُ إِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ**

**دجنګ بدرپس منظراو نورتفصیلات:-** مفسرینو په دې کښې اختلاف کړې دې چه ﴿كَمَآ أَخْرَجَكَ﴾ کښې د ﴿كَمَآ﴾دراتلو څه سبب دې. بعضو وئیلی چه په دې ذکر شوی آیت کښې تشبیه ورکړې شوې ده د مؤمنانو په خپل مینځ کښې د صلحې سره د تقارب اود رسول الله ﷺ د اطاعت باره کښې. نو د خبرې مطلب داسې شو لکه څنګه چه تاسو د غنیمتونوباره کښې اختلاف کړې وو او جنګیدلی اوالله تعالی ستاسو فیصله خلاصه کړې وه. اوتاسو ټولونه نې د تقسیم حق واخستو او رسول الله ﷺ له نې ورکړې وو اورسول الله ﷺ په عدل او انصاف سره تقسیم کړې وو اودا خبره ستاسو د کامل مصلحت په خاطر وو. دغه شان د دښمن سره د جنګیدلو د پاره تاسو له د مدینې وتل دی نو د رعب او دبدبې والا لوئ لښکرسره جنګیدل ستاسو ناخوښه وو. دا لوئی لښکر هغه وو چه د خپل مذهب د کافرانو د امداد د پاره شام ته د تجارت د مال د حفاظت د پاره د مکې نه وتلې وو اود دې جهاد ناخوښولو نتیجه دا شوه چه الله تعالی هم دې جنګ سره تاسو مخ کړنی او د اول نه بغیر د څه قرارداد او جنګ نه تاسو د دښمن نه زیات کړنی او په نتیجه کښې نې تاسو ته امداد او هدایت درکړو. لکه څنګه چه فرمانی جنګ په تاسو فرض کولې شی او دا ستاسو خوښ نه دې. خودا ډیر ممکن دی چه یو څیز تاسو ناخوښه کونې او په حقیقت کښې ستاسو ښیګړه هم په دې کښې وی اویا تاسویوکار خوښونې او په حقیقت کښې نتیجه کښې هغه ستاسو د پاره نقصانی ثابت وی. ستاسو د ښیګړې علم ستاسو الله تعالی ته دې تاسو ته نه دی. بعضو د دې تشبیه دا معنی خودلې ده څنګه چه تاسو الله تعالی په حق توګه د مدینې نه بهر وتلوکښې کامیاب کړنی او بعضې مؤمنان په دې وتلوسره ناراضه وو خوهغوی راغلل. دغه شان هغوی د جنګ نه منع کیږی او تاسو سره د رائې اختلاف ساتی او سره د دې چه د رسول الله ﷺ د رائې حقیقت په هغوی باندې ښکاره شوې وو. مجاهد رحمه الله وائی چه دا معنی ده څنګه چه د مدینې نه مجبوراً تاسو اووتلې دغه شان په امر حق کښې هغوی رسول ﷺ سره جګړه کوی.

**د يُجَادِلُونَكَ صحیح مطلب او مختلف اقوال::** سدی رحمه الله وائی چه دا آیات د بدر په جنګ کښې د وتلو باره کښې دې ﴿ يُجَادِلُونَكَ فِي الْحَقِّ بَعْدَمَا تَبَيَّنَ ﴾ بعضې وانی چه د دې مطلب دې چه اې نبی ﷺ! دا مؤمنان تاسره د جنګ په نیت سره دانفال باره کښې سوالونه پیداکوی لکه څنګه چه دبدر په ورځ هم دوی تاسره مجادله کړې وه او وئیلې وو چه تاسو خو مونږ د قافلې سره د جنګ د پاره ویستلې وو زمونږ ګمان هم نه وو چه مونږ به جنګ کوو اونه مونږ د جنګ دپاره تیارې کړې وو د کور نه وتلې وو. زه وایم چه نبی کریم ﷺ د مدینې نه د ابوسفیان د قافلې د لارې بندولو د پاره وتلې وو خکه چه هغوی ﷺ ته معلومه وه چه دا قافله د ملك شام نه د قریشودپاره ډیر زیات مال اوړی روانه شوې ده. نو نبی کریم ﷺ مسلمانان راضی کړل اود درې سوولسونه لږ شان زیات کسانو سره اووتل اود بدر د چینې دلارې غاړې طرف ته روان شو. ابوسفیان ته د رسول الله ﷺ دحملې کولو خبر شوې ووچه د دې قافلې سردار وو. هغه ضمضم بن عمرو مکې ته اولیګلو اود مدینې د خلقو د ارادې نه نې خبرکړل. د مکې والا تقریباً زر کسانو سره راووتل. ابوسفیان قافله دسیف البحر طرف ته بوتله اوبالکل بچ اووتلو. اوس د مکې دا د زرو کسانو لښکر زیاتیدو تردې چه د بدر د چینې خواته راورسیدل او ډیره نې واچوله. اوس مسلمانان اوکافران د اول نه څه قرار داد بغیر په خپل مینځ کښې اونختل. خکه چه الله تعالی د مسلمانانو نوم اوچتول

غوښتل اود حق او باطل په مینځ کښې یو فیصله کونکې جنګ د الله تعالی په وړاندې وو. لکه څنګه چه دا بیان زر راتلونکې دې. غرض دا چه کله رسول الله ﷺ ته دا خبر ملاؤشو چه د مکې نه یو لوئ لښکر د هغوی سره د جنګ د پاره راووتلو نو الله تعالی حضور ﷺ ته وحی راولیږله چه په دوو کښې به یو څیز تاته ملاویږی یا خو قافله لوټ کړه یا دې لښکر سره جنګ اوکړه. دواړه به نه ملاویږی دې کښې یو اختیارکړه او په هغې کښې کامیاب شه. په مسلمانانو کښې د اکثرو دا رائې وه چه قافله لوټ کړنی او بغیرد جنګ نه به ډیر زیات مال ملاؤشی. د کوم حکایت چه الله تعالی داسې فرمائیلې دې تاسو غوارئی چه په دواړو کښې هغه صورت خوښ کړنی کوم چه شوکت والا نه وی یعنی قافلې سره مقابله اوکړی اود الله تعالی خواراده دا وه چه حق ښکاره شی اود مکې کافران ختم کړې شی.

**د انصارو جرائتمندانه جواب:** حضرت ابوایوب انصاری ﷺ فرمائی مونږ مدینه کښې وو او حضور ﷺ دا فرمائیلی وو چه ماته خبر ملاؤشوې دې ابوسفیان قافله روانه کړې راځی. تاسو خلق څه وایئې آیا د دې قافلې د لارې بندولو د پاره اوځو ممکن دی چه تاسو خلقو ته ډیر مال ملاؤشی. مونږ عرض اوکړو خامخا تلل پکار دی نومونږ اووتلو او یوه ورځ یا دوه ورځې مزل به مو کړې وو. بیا حضور ﷺ اوفرمائیل چه ښه ده د دې کافرانو سره د جنګ باره کښې ستاسو څه خیال دې. دوی ته خبر ملاؤ شوې دې چه تاسو د قافلې دلوټ کولو په خیال وتلې نې نومسلمانانو اووئیل چه والله په مونږ کښې د دومره لوئ لښکر سره د جنګ کولو طاقت نشته. مونږ خو چه وتلې وو نو صرف د قافلې د لوټ کولو په خیال سره وتلې یو. رسول الله ﷺ بیادغه سوال اوکړو بیا مونږ خلقو هم دغه جواب ورکړو. اوس مقداد بن عمرو ﷺ عرض اوکړو یارسول الله ﷺ! مونږ به په داسې موقعه داسې نه وایو لکه څنګه چه د موسی ﷺ قوم موسی ﷺ ته وئیلې وو اې موسی ﷺ! ته او ستارب دواړه لاړشئی او دښمن سره اوجنګیږئی او مونږ دلته ناست یو ستا د واپسئی انتظارکوو. مونږ د انصارو ډلې دا خواهش اوکړو او وئیلې موکه چرې مونږ هم دغه اوونیل کوم چه مقداد ﷺ اووئیل نو دا خبره به د قافلې لوټی مال ملاویدلونه هم زمونږ ډیره خوښه وی. نو دا آیت نازل شو ﴿كَمَآ اَخْرَجَكَ رَبُّكَ مِنۢ بَيْتِكَ بِالْحَقِّ ۠ وَاِنَّ فَرِيْقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ لَكٰرِهُوْنَ﴾ ابو وقاص لیثی ﷺ بیان کوی چه نبی کریم ﷺ تپول د بدر طرف ته بوتلل اود روحاء په مقام نی خلقونه خطبه ورکړه او ونی فرمائیل ستاسو خلقو څه رائې ده؟نو ابوبکر صدیق ﷺ اووئیل چه یارسول الله ﷺ! خبر راغلې دې چه کفار دغه دغه خایونوته رااورسیدل نو بیا رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ستاسو څه خیال دې؟ دې خل حضرت عمر ﷺ هم د ابوبکر ﷺ غوندې جواب ورکړو. حضور ﷺ یو خل بیا دا سوال اوکړو نو سعدابن معاذ ﷺ اووئیل یارسول الله ﷺ! ستاسو مراد زمونږ نه دې نوپه الله تعالی قسم چرې هم برک الغماد ته نه یم تلې اونه ماته د هغې د لارې علم دې خو که تاسو د یمن برک الغماد ته هم ځئی نو بیا به هم مونږ تاسو سره ځو اود موسی ﷺ د قوم په شان وینا به نه کوو چه ته او ستارب لاړشی او جنګ دې اوکړی مونږ دلته انتظار کوو. ممکن دی که ته د وتلو په وخت کښې د څه بل غرض د پاره وتلې وې او بیا الله تعالی ستا د پاره څه بل صورت پیدا کړې وی نو تاسو چه کوم صورت غوارئی اختیار کړئی ځوک چه تاسو ﷺ سره تلل غواړی لاړ دې شی او څوک چه تاسو ﷺ نه واپس کیدل غواړی جدا دې شی. که څوک غواړی نو ستاسو مخالف دې شی او چه څوک غواړی صلحه دې اوکړی. زمونږ چه کوم مال دې هغه تاسو ﷺ تپول اخستې شئی. د سعد ﷺ په دې قول باندې دغه آیت نازل شو.
ابن عباس ﷺ فرمائی چه کله حضور ﷺ د جنګ بدر د پاره مشوره اوکړه او بیا نی د قریشو لښکر سره د جنګ کولو حکم اوکړو نود مسلمانانو دا جنګ ناخوښه وو په دې وجه آیت نازل شوې دو چه ﴿ وَاِنَّ فَرِيْقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ لَكٰرِهُوْنَ﴾ یعنی دبعضې مؤمنانو دا مرضی نه ده اوحق خبره ښکاره کیدو نه پس هم دوی تاسره بحث کوی. هغوی داسې ګنړی چه جنګ کوی نو لکه چه د مرګ طرف ته رابنکلې شی.

مجاهد رحمه الله وائي چه د﴿فِي الْحَقِّ﴾ نه مراد ﴿في القتال﴾ دي.محمد بن اسحاق رحمه الله وائي﴿لَكٰرِهُوْنَ﴾ نه مشركانو سره د جنګ ناخوښي مراد ده. سدي رحمه الله وائي﴿بَعْدَمَا تَبَيَّنَ﴾ مطلب دي چه دا ښكاره كيدلونه پس چه تاسو د رب د حكم نه بغير دځه خبرې اقدام نه كوني نوبيا هم د رسول الله ﷺ د رائې خلاف كوى ابن زيد ﴿يُجَادِلُوْنَكَ فِي الْحَقِّ بَعْدَمَا تَبَيَّنَ كَاَنَّمَا يُسَاقُوْنَ اِلَى الْمَوْتِ وَهُمْ يَنْظُرُوْنَ﴾ باره كښې وائي چه دې نه مراد مشركان دي.يعني دامشركان دحق خبرې باره كښې مجادله كوى لكه چه هغوى د مرګ طرف ته راښكلې كيږي كله چه هغوى ته د اسلام دعوت وركولې شي اوداچه پداسې بد صفت باندې مسلمانان نه شي متصف كيدې اودا صفت خو هم د اهل كفر كيدې شي. د ابن جرير رحمه الله په دې باندې دا اعتراض دې چه د ابن زيد دا قول هيڅ واقعيت نه لرى خكه چه الفاظ ﴿يُجَادِلُوْنَكَ فِي الْحَقِّ﴾ نه د اول سياق عبارت اهل ايمان سره متعلق دي اوكوم الفاظ چه د دې نه پس دى ښكاره خبره ده چه هغه به هم ددوئ نه خبر وى. رښتيا خو دا دى چه د ابن عباس رضی الله عنه قول صحيح دې چه دې نه مراد هم مومنان دى. ابن جرير رحمه الله هم د ابن عباس رضی الله عنه دقول تائيد كړې دې. هم دغه حق دى اود كلام سياق هم د دې تائيد كوى. دحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روايت دې چه كله نبى كريم ﷺ د كاميابئ سره د جنګ بدر نه فارغ شو نو رسول الله ﷺ ته اووئيلې شو اوس قافلې سره هم مخامخ شه اوس هيڅ بنديز هم پاتې نه شو. نو عباس رضی الله عنه چه د قيدى په حيثيت سره د جنګى قيديانونه وو اووئيل چه دا هيڅ كله مناسب نه ده خكه چه يا رسول الله ﷺ الله تعالى تاسو ﷺ سره وعده كړې ده د دوو څيزونونه د يو نو يوڅيز خو تاسو ﷺ ته حاصل شو د دويم څيز حاصلولو هيڅ حق نشته. (۱) د دې سندجيد دې.

د ذَاتِ الشَّوْكَةِ غَيْرَ ذَاتِ الشَّوْكَةِ او غير مطلب:: ددې قول معنى ﴿وَتَوَدُّوْنَ اَنَّ غَيْرَ ذَاتِ الشَّوْكَةِ تَكُوْنُ لَكُمْ﴾ دا ده چه تاسو دا غوښتل چه دواړه څيزونه حاصل كړنې په كوم كښې چه نه څه مقابله شته اونه څه جنګ يعنى د ابوسفيان قافله لوټ كول. حالانكه الله تعالى خو دا غوښتل چه تاسو داسې ډلې سره مخامخ شئ چه د شان او شوكت والا وى او هغوى سره جنګ اوكړى دې د پاره چه الله تعالى تاسو ته كاميابى دركړى اود الله تعالى ددين غلبه اوشى اود الله تعالى كلمه اوچته شى. د الله تعالى نه علاوه د امورو د عاقبت نه څوك خبر نه دى. د حسن تدبير مدبر هم هغه دې سره د دې چه خلق د دې خلاف ولې نه غواړى. لكه چه فرمائى قتال په تاسو باندې فرض دې كه هغه ستاسو ناخوښ ولې نه وى. ډيره ممكن ده چه ستاسو يوه خبره ناخوښه وى او خير هم په هغې كښې وى او يوه خبره درته ښه لګى او شر هم په هغې كښې وى. د لانديني حديث سياق هم په حديث بدركښې دې كله چه رسول الله ﷺ ته د شام نه د ابوسفيان د رواڼيدو خبرملاؤشو نو مسلمانان ئې راوغوښتل او وئې فرمائيل چه د قريشو دې قافلې سره ډير مال اوسامان دې په دې حمله اوكړنى. څه عجيبه ده چه د كافرانو مال الله تعالى تاسو ته دركړى. بعضو سره وسله وه او بعضو سره نه وه اونه د هغوى دا ګمان وو چه رسول الله ﷺ به جنګ كوى. او چه كله ابوسفيان حجاز سره نيزدې شو نو هغه خپل جاسوسان پريخې وو اود هر تلونكى راتلونكى نه به ئې د رسول الله ﷺ خبر اخستلو نو ده ته خبر ملاؤ شو چه محمد ﷺ ستا قافلې پسې لګيدلى دې نو هغه احتياطى تدابير اختيار كړل او ضمضم بن عمرو غفارى ئې زر مكې ته اوليګلو چه قريشو سره ملاؤ شه اود قافلې د حفاظت انتظام اوكړه خكه چه محمد ﷺ حمله كونكې دې. اخوا رسول الله ﷺ هم خپلو ملګرو سره اووتلو او د ذفران وادئې ته اورسيدلو او هلته ئې ډيره واچوله نو هغوى ﷺ ته خبر ملاؤ شو چه قريش د خپلې قافلې د حفاظت د پاره د مكې نه روان شو نوحضور ﷺ مشوره اوكړه. حضرت ابوبكر رضی الله عنه پاسيدو او زبردسته خبره اوكړه او حضرت عمر رضی الله عنه پاسيدو او هغه هم

(۱) ترمذی كتاب تفسير القرآن باب ومن سورة الانفال: ۳۰۸۰، احمد: ۲۲۹/۱، مسند ابى يعلى: ۲۳۷۳.

دغه اوونیل، بیا مقداد ﷺ اوونیل یارسول اللهﷺ! مونږ تاسو سره یو د الله تعالی چه کومه خوښه وی هغه پوره کړه. په الله تعالی قسم مونږ به د موسی ﷺ د قوم په شان وینا نه کوو که تاسو مونږ حبشو پورې هم بوتلل غواړئ نو ترکومې چه تاسو ﷺ هلته نه وئی رسیدلې مونږ به تاسو نه پریږدو. نو حضورﷺ مقداد ﷺ ته د خیر دعا اوکړه. بیا حضور ﷺ اوفرمائیل اې خلقو ماته مشوره راکړئ د حضورﷺ مراد د انصارونه وو. یو خو په دې وجه هم چه انصار په شمیرکښې زیات وو او دویم په دې وجه هم چه کله په عقبه کښې انصارو بیعت کړې وو نو هم په دې خبره ئې کړې چه کله تاسو د مکې د دې نیزدې ځایٔ نه اوځئ او مدینې ته اورسئ نو په هر حال کښې به مونږ تاسو سره یو. یعنی که دښمن راشی او په تاسو حمله کوی نو مونږ به تاسو ﷺ سره یو. په دې کښې خو دا وعده نه وه چه جارحانه اقدام په صورت کښې به هم مونږ تاسو سره یو په دې وجه حضور ﷺ د هغوی رائې او اراده هم معلومول غوښتل دې د پاره چه د هغوی نه هم وعده واخستې شی اود هغوی همدردی حاصله کړی. سعد ﷺ اوونیل چه زما په خیال تاسو زمونږ نه جواب غواړئ.حضورﷺ اوفرمائیل چه اوزما مقصد هم ستاسوخلقو نه دې. سعد ﷺ اوونیل یارسول اللهﷺ! زمونږ په تاسو ایمان دې ستاسو د حکم منلو بیعت مونږ ستاسو په لاس کړې دې مونږ به تاسو چرې هم نه پریږدو په اللهﷻ قسم که دسمندر په غاړه ولاړ هم تاسوخپل اسونه ورواچول نومونږبه هم په هغې کښې وردانګو په مونږ کښې به یوکس هم لږ شان سستی نه کوی. مونږ په جنګونوکښې بهادری خودونکې او مصیبتونه زغمونکې یو. تاسوﷺ به ان شاء الله زمونږ نه خوشحاله ئی. په دې جواب سره حضورﷺ ډیر خوشحاله شو او په هغه وخت ئی د روانیدو حکم ورکړو او وئی فرمائیل چه رب په دوو کښې د یو ماسره وعده فرمائیلې ده او هیڅ عجیبه نه ده چه هغه یو هم دا جنګ وی. اوزه د مشرکانو د قتل ځایٔ د دې ځایٔ نه په خپلو سترګو وینم.

| | | |
|---|---|---|
| رَبَّكُمْ | تَسْتَغِيثُونَ | إِذْ |
| تاسوفریاداوکړو\| رب خپل ته | | کله چې |

اوکله چې تاسوخپل رب ته فریاد اوکړو

| مِّنَ الْمَلَٰٓئِكَةِ | بِأَلْفٍ | مُمِدُّكُمْ | أَنِّي | لَكُمْ | فَاسْتَجَابَ |
|---|---|---|---|---|---|
| د فرښتو نه | په زرکسانوسره | مددکونکې یم ستاسو | چې بیشکه زهٔ | ستاسو دپاره | نو قبول ئې کړو |

نو الله ﷻ ستاسوفریاد واوریدو (وې وئیل) چې زهٔ ستاسو د مدد دپاره یوزر فرښتې

| وَلِتَطْمَئِنَّ | بُشْرَىٰ | إِلَّا | وَمَا جَعَلَهُ اللَّهُ | مُرْدِفِينَ۝ |
|---|---|---|---|---|
| اودپاره ددې چې مطمئن شی | زیرې | مګر | اونهٔ وو ګرزولې دا امداد الله | پرله پسې راتلونکی |

یوبل پسې درلیږم\| اودا خبره الله ﷻ ځکه اوکړه چې په تاسوزیرې اوشی \| ..............او ستاسو

| عَزِيزٌ | إِنَّ اللَّهَ | مِنْ عِندِ اللَّهِ | إِلَّا | وَمَا النَّصْرُ | قُلُوبُكُمْ | بِهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| غالب دې | بیشکه الله | دطرفه دالله نه دې | مګر | اونهٔ دې امداد | زړونه ستاسو | په دې سره |

زړونه مطمئن شی \| اومددخو صرف دالله ﷻ دطرفه وی \| بیشکه الله ﷻ غالب دې

| حَكِيمٌ۝ |
|---|
| دحکمت خاوند دې |

او دحکمت خاوند دې\|

**قوله تعالى: إِذْ تَسْتَغِيثُونَ رَبَّكُمْ**

**ميدان بدركښې دنبى كريمﷺ دعاګانې اودَ اللهﷻ دَ طرف نه دَنصرت وعده:** عمر بن الخطاب رضي الله عنه نه روايت دې د بدريه ورځ حضورﷺ د خپلو ملګرو شميراوكړو نود دريوسوونه څه د پاسه وو او مشركان تقريباً زر كسان وو نوحضورﷺ قبلې ته مخ كړو اود الله تعالى نه ئې دعا اوغوښتله. رسول اللهﷺ صرف يوڅادر اغوستې وو او ته بندئې تړلې ووااو فرمانيلې اې ربه تا چه ماسره كومه وعده كړې وه هغه په دې موقع باندې پوره كړې. كه دا يو موټې مسلمانان تا نن هلاك كړل نو په زمكه باندې به ستا عبادت كونكې څوك هم پاتې نه شي او دتوحيد نوم اونښه به ختم شي. رسول اللهﷺ الله تعالى ته فريادكولو او دعائى غوښتله تردې چه څادر د حضورﷺ د اوږو نه راپريوتلو حضرت ابوبكر رضي الله عنه راغلو او هغه ئې ورته په اوږو باندې واچولو اود حضور ﷺ نه شاته اودريدو او وئې وئيل يارسول اللهﷺ! اوس د الله تعالى نه سوالونه بس او زارې بس كړه هغه به خپله وعده خامخا پوره كوى. نو الله تعالى دا آيت نازل كړو كله چه تا د ا لله تعالى نه دعا اوغوښتله نو هغه ستاسو درخواست قبول كړو اوس به زه ستاسو امداد په يو زر فرښتو صف په صف باندې كوم. نو چه په كومه ورځ جنګ اوشو نو الله تعالى مشركانوته ماتې وركړه. د مشركانونه اويا قتل شول او اويا قيديان شول.

**خلافه ثلاثه سره درسول كريمﷺ مشوره اودهغوئ رائې:** اوس رسول اللهﷺ ابوبكر رضي الله عنه، عمر رضي الله عنه اوعلى رضي الله عنه سره مشوره اوكړه نوابوبكر رضي الله عنه وئيل يا رسول اللهﷺ! دا ستا رورولئى قبيلې او خاندان والا دى زه خو دا رائې وركوم چه دوى نه فديه واخلئى او پريږدئى چه د فدې د رقم نه مونږ ته مالى استحكام حاصل شى په كافرانو باندې به غلبه او طاقت پيدا شى اوڅه ګرانه ده چه روستو اللهﷻ دوى ته هدايت وركړى.بيابه دوى پخپله زمونږ په طاقت كښې زياتوالې كوى.دې نه پس ئې عمر رضي الله عنه ته اوفرمانيل عمر! ستا څه خيال دې؟ نو عمر رضي الله عنه اووئيل چه زما خو هغه رائې نه ده كومه چه دابوبكر رضي الله عنه ده. تاسو ماته حكم راكړئى چه زه خو خپل رشته دار قيديان قتل كړم اوعلى رضي الله عنه ته حكم وركړه چه د خپل رور عقيل سټ والوزوى. اوحمزه رضي الله عنه د خپل فلانكى رور سټ پرې كړى دې د پاره چه مونږ د الله تعالى په وړاندې دا ثابته كړې شو چه د مشركانود پاره زمونږ په زړه كښې هيڅ نرمى نشته. دا مشركان قيديان خو د كافرانو سرداران او مشران دى. خو رسول اللهﷺ د حضرت ابوبكر رضي الله عنه رائې له ترجيح وركړه اود هغه قيديانو نه ئې فديه واخسته او پريخودل. حضرت عمر رضي الله عنه وائى چه په دويمه ورځ زه د حضورﷺ كورته لاړم څه ګورم چه حضورﷺ او حضرت ابوبكر رضي الله عنه ژاړى. ما عرض اوكړو يارسول اللهﷺ! تاسو او ابوبكر رضي الله عنه ولې ژاړئې، كه ژړا راغله نو زه به هم اوژاړم اوكه رانغله نو د ژړا شكل به جوړكړم چه تاسو سره شريك شم. حضورﷺ اوفرمانيل چه دې د فديه اخستو په وجه ژاړى. زه د دغې خطاپه وجه هغه عذاب وينم چه دومره نيزدې دې لكه زما سره دا ونه. الله تعالى دا آيت نازل كړو ﴿مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَكُونَ لَهُ أَسْرَىٰ حَتَّىٰ يُثْخِنَ فِي الْأَرْضِ ۚ تُرِيدُونَ عَرَضَ الدُّنْيَا وَاللَّهُ يُرِيدُ الْآخِرَةَ ۗ وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ۝ لَوْلَا كِتَابٌ مِنَ اللَّهِ سَبَقَ لَمَسَّكُمْ فِيمَا أَخَذْتُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ۝ فَكُلُوا مِمَّا غَنِمْتُمْ حَلَالًا طَيِّبًا﴾ غنيمت ئې حلال كړو. بيا چه كله په راتلونكى كال كښې د اُحد ورځ راغله نود يوم بدر د غلطئى الله تعالى داسې بدله واخسته چه د فديه په بدله كښې پريخودې شوو د اوياؤ كافرانو په بدله كښې دمسلمانانو اويا صحابه كرام شهيدان شو.دحضورﷺ مخامخ څلور غاښونه مبارك شهيدان شو د اوسپنې خود ئې په سرمبارك كښې ورخښ شول وينه ئې په مخ مبارك باندې اوبهيدله نودا آيت نازل شو. مصيبت راؤ رسيدو نو تاسو اووئيل چه دا د كوم ځائ نه راغلو وايه چه دا ستاسو د خپلو لاسونو نه نازل شوې دې [1] يعنى د فدې اخستلو او پريخودلو په سبب.

---

[1]) صحيح مسلم كتاب الجهاد باب الامداد بالملائكه فى غزوه بدر...:۱۷۶۳، احمد:۱/۱۳۰، ابن حبان: ۴۷۹۳، دلائل النبوه:۳/۵۱.

ابن عباس ﷺ فرمائی چه ددې آیت مبارك ﴿ إِذْ تَسْتَغِيثُونَ رَبَّكُمْ ﴾ نه مراد د حضور ﷺ دعا کول دی ځکه چه د بدر په ورځ حضور ﷺ ډیر په اصرار سره دعا غوښتله چه حضرت عمر ﷺ راغلو او وئی وئیل یارسول الله ﷺ! اوس خپله دعا مختصر کړه الله تعالی به خامخا خپله وعده پوره کوی کومه چه تاسو سره کړې شوې ده. د ابن عباس ﷺ نه روایت دې چه د بدر په ورځ حضور ﷺ فرمائیل اې الله تعالی! زه د وعدې د پوره کولو د پاره ستا توجو راګرځوم ګنی نو اې الله تعالی! ستا عبادت کونکې به یو هم پاتې نه شی. نو حضرت ابوبکر ﷺ دحضور ﷺ لاس اونیولو او وئی وئیل یارسول الله ﷺ! بس بس. نو حضور ﷺ پاسیدو او ونی فرمائیل چه په نیزدې موده کښې کافرانوته ماتې کیدونکې ده او شاکړې تختیدونکې دی. ﴿ بِأَلْفٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ مُرْدِفِينَ ﴾ یعنی د فرښتو صفونه یو پسې بل لګیدلې وو اود ﴿ مُرْدِفِينَ ﴾ نه مراد امداد هم کیدې شی یعنی فرښتې په امداد باندې وې. دحضرت علی ﷺ نه روایت دې چه حضرت جبرائیل ﷺ د زرو فرښتو سره د حضور ﷺ نبی طرف ته وو کوم طرف ته چه زه ووم. د دې مطلب دا شو چه د زرو په امداد باندې نورې زر هم وې. په دې وجه بعضو د ﴿ مُرْدِفِينَ ﴾ د دال په فتح سره قراءت کړې دې. والله اعلم. او دا هم روایت دې چه د پنځو سوو ملائکو لښکر د جبرائیل ﷺ سره وو او پنځه سوه میکائیل ﷺ سره. ابن عباس ﷺ فرمائی چه یو مسلمان په یوکافر پسې لګیدلې وو چه د بره نه د کافر په سر یوه کوړه راپریوتلو آواز واوریدو اود یو سور کش کړپ ئی هم واوریدو اوس څه ګوری چه کافر لاندې راپریوتلو او په زمکه مردار شو. د کوړې په ګذار باندې سر مات شو او سره د دې چه یو انسان هم وهلې نه وو. اوس روستوراتلونکی انصاری داخبره حضور ﷺ ته ورکړونو حضور ﷺ اوفرمائیل چه تا رښتیا اووئیل دا آسمانی امداد وو. دا حضور ﷺ درې ځل اوفرمائی. اویا (۷۰) خو قتل شوې وو او اویا (۷۰) قیدیان شوی وو. (١) رافع ﷺ د اهل بدر نه وو وائی چه جبرائیل ﷺ راغلو اوحضور ﷺ نه ئی اوونیل چه ته اهل بدر څنګه ګڼړې؟ نو حضور ﷺ اوفرمائیل مسلمانانوکښې د ټولونه افضل. نو جبرائیل ﷺ اووئیل په بدرکښې امداد کونکې ملائکې هم په نورو ملائکوکښې هم داسې افضل ګڼړلې شی. (٢) بخاری او مسلم شریف کښې دی چه حضور ﷺ حضرت عمر ﷺ ته اوفرمائیل چه حضرت عمر ﷺ خود حاطب بن ابی بلتعه کښې مشوره ورکړې وه چه دا حاطب په بدرکښې شریك شوې وو او تاته څه معلومه ده چه الله تعالی اهل بدر ښنلې وی ځکه چه فرمائیلې وو چه اوس ته څه غواړې نوکوه ما ته ښنلې ئې.(٣)

**د فرښتو نزول صرف دخوشحاله کولو دپاره وو::** د الله تعالی قول دې ﴿ وَمَا جَعَلَهُ اللَّهُ إِلَّا بُشْرَىٰ ﴾ د فرښتو دا رالیګل صرف ستاسو د خوشحالولو د پاره وو اودا چه ستا زړه ته تسلی وی ګنی الله تعالی خو ستاسو په هرقسم امداد کولو باندې قادر دې. هغه ته د امداد د پاره د محتاجئی څه ضرورت دې. دا امداد خو په حقیقت کښې د الله تعالی امداد وو اوفرښتې خود امداد ظاهری صورت وو لکه چه فرمائی کله چه هم تاسو کافروینئی نود هغوی ستونه وهئی. چه غالب راشئی نو هغوی په زنځیرونو کښې اوتړئی بیا ئې معاف کړئی یا ترې فدیه واخلئی پریږدئی. تردې چه جنګ بند شی. دا آیت په دې وجه راوړلې شو چه که الله تعالی غواړی نو پخپله د هغوی امداد کولې شی خو په اصل کښې هغه بعضې په بعضو باندې ازمیښت کوی اوچه کوم خلق د الله تعالی په لارکښې شهیدان شو الله تعالی د هغوی اعمال چرې هم نه ضائع کوی. هغوی ته به هدایت اوکړی او هغوی به جنت کښې داخل کړی. د الله تعالی ارشاد دې ﴿ وَتِلْكَ الْأَيَّامُ نُدَاوِلُهَا بَيْنَ النَّاسِ وَلِيَعْلَمَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَيَتَّخِذَ مِنْكُمْ شُهَدَاءَ وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ الظَّالِمِينَ ﴾

---

١) صحیح مسلم حواله سابق.

٢) صحیح بخاری کتاب المغازی باب شهود الملائکه بدرا:۳۹۹۲.

٣) صحیح بخاری کتاب المغازی باب فضل من شهدبدرا:۳۹۷۳، صحیح مسلم:۲٤۹٤.

وَلِيُمَحِّصَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَيَمْحَقَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۱۴۱﴾ مونږ زمانه په خلقو کښې ګرځوو اوزمانه بدله بدله کولو سره راولو دې دپاره چه الله ﷻ جاج اوامتحان واخلي اوشهيدان جدا کړي.دظالمانونه الله تعالى نه خوشحاليږي په دې کښې د ايماندارانوامتياز کيږي اوکافران الله تعالى ختموي.

**د جهاد اصلي هدف څه دې؟**.د جهاد شرعي فلسفه هم دغه ده چه الله تعالى مشرکانوته د موحدانو په لاس سزا ورکوي دې نه وړاندې به هغوی په عام آسماني عذابونوباندې هلاك کولې شو. لکه چه په قوم نوح ﷺ باندې طوفان راغلو، عاديان په سيلئي سره تباه کړې شو، اهل ثمود په چغه سره غرق کړې شو. د لوط ﷺ قوم الته کړې شو اود کاڼو باران پرې اوشو. د شعيب ﷺ په قوم باندې غررازوړند کړې شو.الله تعالى موسى ﷺ راوليګلو او دهغه دښمن فرعون نې هلاك کړو اود هغه قوم نې په درياب کښې ډوب کړل. موسى ﷺ ته تورات ورکړې شو او کافران قتل کول فرض اوګرځولې شو او هم دغه حکم په نورو شريعتونوکښې هم قائم پاتې شو. لکه څنګه چه فرمائي مونږ موسى ﷺ ته کتاب ورکړو او د هغوی نه وړاندې امتونه هم د نافرمانئي په سبب هلاك کړې شوې وو. په دې کښې د خلقو د پاره بصيرت دې. دمؤمنانو کافران د قيد په ځائ قتل کول هم د دې کافرانو يو زبردست د بې عزتئي خيزوو اودې سره به د مؤمنانو زړه هم يخيدو. لکه څنګه چه مؤمنانوته حکم ورکړې شوې وو چه دا کافران قتل کړئي الله تعالى ستاسو په لاس دوی ته رسوائي اوعذاب ورکول غواړي اود دې د پاره هم چه ستاسو زړه يخ شي. څکه چه دا سټ وهلې شوی د قريشو سردارانو به مسلمانانوته په ډير سپك نظر کتل او هغوی ته به نې هر ممکن تکليف وررسولو. که چرې دوی په ډاګه ښکاره رسوا کولې شو نو د مسلمانانو زړونوته به د دې بدلې اخستلو سره څومره يخوالې رسيدلو. نو چه کله ابوجهل په جنګ کښې قتل کړې شو نود هغه د لاش ډيره بې عزتي اوشوه اوکه په خپله بستره باندې په خپل مرګ مرشوې وو نود هغه به دومره بې عزتي نه وه شوې. يا څنګه چه ابولهب مردار شو نوداسې سخا شو چه د هغه نيزدې خپلوان هم د هغه لاش ته نه نيزدې کيدل. د لامبولو په ځائ د هغه په لاش د لرې نه اوبه اچولې شوې اود خښولو په ځائ هغه په يوه کنده کښې ورااوغورزولې شو.ددې دپاره اوفرمائيلې شو چه عزت د کافرانود پاره نه دې بلکه د رسول الله ﷺ او مؤمنانود پاره دې په دنياکښې هم او په آخرت کښې هم. اوفرمائي چه مونږ د خپلو رسولانو او مؤمنانو امداد په دنيا کښې هم کوو او په آخرت کښې هم. تاسو ته دا حکم کول چه کافران قتل کړه په دې کښې هم د هغه خاص حکمت دې ګني هغه په خپل قدرت باندې هغوی هلاك کولې نه شي.

| مِّنْهُ | اَمَنَةً | النُّعَاسَ | يُغَشِّيْكُمُ | اِذْ |
|---|---|---|---|---|
| خپل نه | د امن ادطرفه | پرکالي ادپاره | واچوله په تاسو باندې(الله) | (ياد کړئ)کله چې |
| او هغه وخت ياد کړه چې الله د خپل طرفه په تاسو باندې دامن راوستو دپاره پرکالي راوسته | | | | |

| بِهٖ | لِّيُطَهِّرَكُمْ | مَآءً | مِّنَ السَّمَآءِ | عَلَيْكُمْ | وَيُنَزِّلُ |
|---|---|---|---|---|---|
| په دې سره | ددې دپاره چې پاك کړي تاسوا | اوبه | داسمان نه | په تاسو باندې | اونازلې کړي (الله) |
| او داسمان د طرف نه نې په تاسو اوبه راووروليا د دې دپاره چې تاسو په هغې سره پاك کړي | | | | | |

| وَلِيَرْبِطَ | الشَّيْطٰنِ | رِجْزَ | عَنْكُمْ | وَيُذْهِبَ |
|---|---|---|---|---|
| اودپاره ددې چې مضبوط والې اوکړي | د شيطان | پليتي | ستاسو نه | اولرې کړي |
| اوستاسو نه شيطاني پليتي (وسوسې) لرې کړي ا .........اود دې دپاره چې ستاسو زړونه | | | | |

عَلٰى قُلُوْبِكُمْ وَيُثَبِّتَ بِهِ الْاَقْدَامَ ۝ اِذْ يُوْحِيْ رَبُّكَ

په زړونو ستاسو | اومحکم کړي | په دې سره | قدمونه | کله چې وحی کوله | رب ستا

مضبوط کړي | اوستاسو قدمونه ټينګ کړي | اوکوم وخت چې ستا رب فرښتوته حکم اوکړو

اِلَى الْمَلٰٓئِكَةِ اَنِّيْ مَعَكُمْ فَثَبِّتُوا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

فرښتوته | چې بيشکه زۀ | ستاسو سره يم | پس مضبوط کړئ تاسو | هغه کسان | چې ايمان ئې راوړی دی

چې زه درسره ملګری يم تاسو مسلمانان (په ميدان جنګ کښې) ثابت قدمه کړئ

سَاُلْقِيْ فِيْ قُلُوْبِ الَّذِيْنَ كَفَرُوا الرُّعْبَ فَاضْرِبُوْا

اوبه غورزوم زۀ | په زړونو کښې | دهغه کسانو | چې کافران شوی دی | ويره | نو اووهئ

زرده چې زۀ به دکافرو په زړونو کښې رعب واچوم | ............ نودوئ د ستونو دپاسه اووهئ

فَوْقَ الْاَعْنَاقِ وَاضْرِبُوْا مِنْهُمْ كُلَّ بَنَانٍ ۝ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ

دپاسه | د ستونو | او اووهئ | دهغوئ نه | هر | بند دګوتو | دا خکه | چې بيشکه دوئ

.......................او دوی د ګوتو په هريو جوړ اووهئ | دا سزا ځکه و رکړې شوه چې دوئ

شَآقُّوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ۚ وَمَنْ يُّشَاقِقِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ

مخالفت کړې دې دالله | او د رسول د هغه | اوڅوک چې | مخالفت کوی | دالله | او د رسول د هغه

دالله ﷻ اودرسول ﷺ سره مقابله کړې وه | اوڅوک چې دالله ﷻ او د هغه رسول ﷺ سره مقابله اوکړی

فَاِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ۝ ذٰلِكُمْ فَذُوْقُوْهُ وَاَنَّ

نوبيشکه الله | سخت عذابونکې دی | دا ستاسو (سزا) ده | نواوڅکئ مزه ددې | اوبيشکه

نوالله ﷻ ډیرسخت عذاب ورکونکې دې | نو انې (کافرانو) دا ستاسو سزا ده پس ددې سزا خوند اوڅکئ | اوياد ساتئ چې

لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابَ النَّارِ ۝

دې دپاره دکافرانو | عذاب د وور |

(په آخرت کښې هم) دکافرانو دپاره د وور عذاب دې

**قوله تعالى:: اِذْ يُوْحِيْ رَبُّكَ اِلَى الْمَلٰٓئِكَةِ**

**فرښتې قطارپه قطار ڈ بدر په ميدان کښې :-** الله ﷻ هغه احسانات يادوی چه د جنګ په وخت کښې په تاسو پرکالې شروع کولوسره مونږ په تاسوباندې احسان کړې دې اودخپل کمې اوددښمن د زياتوالی چه تاسو ته کوم احساس وو اود دې احساس لاندې تاسو باندې يوه ويره شروع وه د هغې نه نې تاسو په امن کښې کړې اودغه شان الله تعالی د اُحد په ورځ هم کړې وو. لکه چه فرمائی ﴿ ثُمَّ اَنْزَلَ عَلَيْكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ الْغَمِّ اَمَنَةً نُّعَاسًا يَّغْشٰى طَآئِفَةً مِّنْكُمْ ۙ وَطَآئِفَةٌ قَدْ اَهَمَّتْهُمْ اَنْفُسُهُمْ يَظُنُّوْنَ بِاللّٰهِ غَيْرَ الْحَقِّ ظَنَّ الْجَاهِلِيَّةِ ۭ يَقُوْلُوْنَ هَلْ لَّنَا مِنَ الْاَمْرِ مِنْ شَيْءٍ ۭ قُلْ اِنَّ الْاَمْرَ كُلَّهٗ لِلّٰهِ ۭ يُخْفُوْنَ فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ مَّا لَا يُبْدُوْنَ لَكَ ۭ يَقُوْلُوْنَ لَوْ كَانَ لَنَا مِنَ الْاَمْرِ شَيْءٌ مَّا قُتِلْنَا هٰهُنَا ۭ قُلْ لَّوْ كُنْتُمْ فِيْ بُيُوْتِكُمْ لَبَرَزَ الَّذِيْنَ كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقَتْلُ اِلٰى مَضَاجِعِهِمْ ۚ وَلِيَبْتَلِيَ اللّٰهُ مَا فِيْ صُدُوْرِكُمْ وَلِيُمَحِّصَ مَا فِيْ قُلُوْبِكُمْ ۭ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ۝ ﴾[1] يعنی د

[1] آل عمران آيت :۵۴

غم او خفگان نه پس الله تعالى تاسو ته امن درکړو او د پرکالي په صورت کښې ته پټ کړې وي.
ابوطلحه ﷺ وائي چه د جنګ احد په ورځ په ما باندې هم پرکالي راغلي وو چه توره زما د لاس نه پريوتله او ما به راوچتوله [۱] اوما خلقو ته هم کتل چه ډهالونو ئې په سرونوباندې دخوب نه ټالنى وهلې.علیﷺ فرمائي چه د بدر په ورځ مقدادﷺ نه علاوه بل چا سره سورلي نه وه. مونږ ټول د خوب په حالت کښې ووخورسول الله ﷺ ترسحره پورې ديوې ونې لاندې مونځونه کول اودالله تعالى په وړاندې ژړيدلو. [۲]

**نعاس په جهاد کښې رحمت او مانځه کښې دشيطان حرکت دې::** ابن مسعودﷺ وائي چه د جنګ په ورځ دا پرکالې د الله تعالى دطرف نه لکه يود امن شکل کښې وو اوپه مانځه کښې هم دغه پرکالې د شيطان د طرف نه وی[۳] قتاده رحمه الله وائي چه پرکالې په سر کښې وی او خوب په زړه کښې وی. زه وايم چه پرکالي د اُحد په ورځ راګيرکړې وو اودا خبر خو ډير مشهور اوعام دې اودلته آيت مبارك د قصې سياق بدرکښې دې اودا په دې خبره دليل دې چه په بدرکښې هم پرکالې وو اودا به د جنګ په سختوالئ په مؤمنانوباندې شروع کيدلو دې د پاره چه د هغوی زړونه د الله تعالى په امداد مطمئن او په امن کښې شي اودا په مؤمنانوباندې د الله تعالى د طرف نه فضل او رحمت دې لکه چه فرمائي سختئ سره سره آسانی هم وی. د دې د پاره په حديث شريف کښې دی چه د بدر په ورځ نبی کريمﷺ د خان د پاره جوړه شوې خيمه کښې د صديق اکبرﷺ سره وو اودواړو په يوځائ د الله تعالى نه دعاکوله. په دې کښې حضورﷺ له پرکالې غوندې راغله بيا حضورﷺ مسکې شان شو او بيدار شو او وئ فرمائيل اې ابوبکرﷺ! خوشحاله شه هغه جبرائيل ﷺ دې چې په ثنايا غابښونو يې ګرځ دی. بيا حضورﷺ د خيمې نه رابهرشو اودا آيت ئې تلاوت کولو چه دښمنانوته به ماتې اوشي او هغوی به شاکړې تختی[۴] بياارشاد کيږی ﴿ وَيُنَزِّلُ عَلَيْكُم مِّنَ السَّمَآءِ مَآءً ﴾ يعنی الله تعالى دآسمان نه په تاسو باندې اوبه نازل کړې يو خود خوب غوندې حالت ستاسو د پاره د امن ذريعه اوګرځوله او دويم احسان په تاسو باندې د الله تعالى دا دې چه اوبه راووريدلې چه د مسلمانانود پار فائده مند او کافرانود پاره نقصانی ثابت شوې.

**ميدان بدر کښې شيطان وسوسې او دهغې ازاله::** ابن عباسﷺ وائي چه بدرکښې رسول الله ﷺ کوم ځائ کښې حصارشوې وو هلته مشرکانو په ميدان بدر کښې په اوبوباندې قبضه کړې وه اود مسلمانانو او اوبو په مينځ کښې هغوی حائل وو. مسلمانان د کمزورئ په حال کښې وو. شيطان د مسلمانانو په زړونوکښې وسوسه اچول شروع کړه چه تاسو د لوئ الله والا د کيدو دعوه کوئ او په تاسوکښې رسول هم موجود دې او په اوبوباندې قبضه د مشرکانوده اود اوبونه تاسو دومره محروم شوئ چه مونځ هم کوئ نود غسل د پاره تيمم کولو سره ئې کوئ. نو الله تعالى ښه اوبه راووروليې. مسلمانانو اوڅکلې او پاکی اوصفائی هم اوکړه.الله تعالى دشيطان وسوسه هم ښکته کړه د اوبو په وجه د مسلمانانو طرف ته شکه کيناسته خلقو او خناورو ته په تلوکښې آسانی شوه اوالله تعالى د رسول الله ﷺ په يو زر فرښتو سره امداد اوکړو.جبرائيلﷺ يوطرف ته پنځو سوو فرښتو سره ولاړ وو ميکائيل ﷺ د نورو پنځوسوو

---

[۱] صحيح بخاری کتاب التفسير سوره آل عمران باب قوله ﴿امنة نعاسا﴾ :۴۵۶۲،ترمذی: ۳۰۰۷.
[۲] احمد:۱/۱۲۵وسنده صحيح، مسنداُبی يعلى: ۲۸۰، ابن حبان:۲۲۵۷ شيخ البانی رحمه الله هم دې ته صحيح ونيلي.
اوګورئ صحيح مواردالظمان:۸-۱۴۰.
[۳] الطبری:۱۳/۴۱۹.
[۴] دلائل النبوة:۳/۸۰-۸۱، دَ دې معنې روايت په صحيح بخاری:۳۹۵۳کښې هم موجود دې خو په هغې کښې دَ جبرائيل ذکر نشته.

سره موجود وو. (١)

**د بدر نقشه او د الله ﷻ امداد::** ابن عباس﷛ وائي د قريشو مشركان چه كله د ابوسفيان د قافلې د امداد د پاره اووتل اومسلمانانو سره اوجنګيدل نو د بدر په چينه باندې ډيره واچوله. مسلمانان د اوبونه محروم شو او د تندې نه ترقيدل. مونځ ئي هم د جنابت او بې اودسئي په حالت كښې كولو تردې چه دهغوی په زړونوكښې مختلف خيالونه پيدا شو. اوس الله تعالى اوبه راو ورولې او ميدانونوكښې اوبه اوبهيدلې. مسلمانانو لوښې ډك كړل څناورو باندې اوڅكولې غسل ئي اوكړو. الله تعالى هغوی ته پاكي وركړه اوهغوی ثابت قدم شول. دمسلمانانواوكافرانو په مينځ كښې شګه وه. باران اووريدلو زمكه كيناستله او سخته شوه. دمسلمانانو قدمونه په زمكه باندې كلك شول. مشهوره داده كله چه حضور ﷺ د بدر طرف ته روان شو نو هلته د اوبوسره نيزدې كوز شو. حباب بن منذر ﷛ د حضورﷺ خدمت كښې حاضر شو عرض ئي اوكړو يارسول اللهﷺ! كوم ځائ كښې چه تاسو ډيره شوئې آيا د وحي په حكم ډيره شوئې د كوم نه چه مونږ يوه ذره هم مخ نه شو اړولې يا دا كه د جنګي مصلحت نه دلته حصار شوې ئې. رسول الله ﷺ اوفرمائيل د مصلحت لاندې ډيره شو. حباب﷛ ونيل چه په داسې صورت كښې نور وړاندې لاړشئ په آخري اوبوباندې قبضه اوكړئ هلته به حوض جوړكړو اود دې ځائ ټولې اوبه به راجمع كړو نو په اوبو باندې به زمونږ قبضه وی او دښمن به د اوبونه بغير پاتې شي. نو حضورﷺ وړاندې لاړو، (٢) وائي چه حباب﷛ لكه دا مشوره وركړه نو هغه وخت د آسمان نه يوه فرښته راكوزه شوه او جبرائيل﷩ رسول الله ﷺ سره ناست وو دې فرښتې اوونيل اې محمدﷺ! الله تعالى سلام فرمائي او دا ارشاد ئي فرمائيلې چه د حباب بن منذر ﷛ رائې ستاسو د پاره صحيح ده. حضورﷺ د جبرائيل ﷩ طرف ته متوجه شو او تپوس ئي اوكړو چه آيا ته دا پيژنې؟ جبرائيل ﷩ د دې كتو سره اوونيل زه ټولې فرښتې خو نه پيژنم خودا ضرور فرښته ده څه شيطان نه دې. خودكافرانوطرف ته زمكه ښكته وه هلته ترمه جوړه شوه او تګ راتګ ګران شو. الله تعالى د پركالي احسان كولونه وړاندې د اوبو ورولو احسان اوكړو. دوړې كيناستې زمكه سخته شوه مسلمانان خوشحاله شو ثابت قدمي زياته شوه. اوس پركالي راغله مسلمانان تازه شو (٣) سحر جنګ كيدونكې دې د شپې سپك غونډې باران اوشو مونږ د ونې لاندې د باران نه پناه واخسته. نبی كريمﷺ وينې وو اوخلقو سره ئي د جنګ خبرې كولې. ارشاد دې ﴿لِيُطَهِّرَكُم بِهِ﴾ يعني د لوئې پليتئي او وړې پليتئي نه د پاكولو د پاره مو اوبه راوورولې اودې د پاره چه د شيطان د دهوكې نه هم تاسو خلاص كړي اودا د زړه پاكي وه. لكه چه د جنتيانوباره كښې فرمائيلې دې دوی ته به د اغوستلو د پاره رينښمي جامې ملاويږي اود سرو زرو او سپينو زرو كالي به وی اودا ظاهری ښائست دې اوالله تعالى به هغوی باندې شراب طهور اوڅكي اود حسد بغض او كينې نه به هغوی پاك كړي اودا د باطن ښائست شو. د اوبو ورولو نه داهم مقصد وو چه ستاسو زړونوته تسلي دركړي او صابر او ثابت قدم شئي.دا صبر يو بل باطني بهادري ده او ثابت قدمي ظاهری بهادري ده.

دالله تعالى ارشاد دې ﴿إِذْ يُوحِي رَبُّكَ إِلَى الْمَلَائِكَةِ أَنِّي مَعَكُمْ فَثَبِّتُوا الَّذِينَ آمَنُوا﴾ چه الله تعالى ملائكوته وحي اوليګله چه زه تاسو سره يم تاسو مؤمنان ثابت قدم اوساتئ. داېې نعمت دې دا الله تعالى به مسلمانانو باندې ظاهروی دې د پاره چه د هغه شكريه ادا كړي، هغه تبارك تعالى دې. الله تعالى ملائكوته تاكيد اوفرمائيلو چه د نبی كريم ﷺ،د نبی د دين او د مؤمنانو ډلې امداد اوكړئ دې د پاره چه د هغوی

(١) دلائل النبوه:٣/٧٨-٧٩، الطبری: ٤٢٣/١٣.
(٢) ابن هشام: ٦٢٠/١، دلائل النبوه:٣/٣١، ٣٥.
(٣) الطبری:٤٢٥/١٣.

زړونه مات نه شي او هغوی همت کمزوري نشي.تاسوهم دهغوی سره کافرانو سره جنګ اوکړئ. وئیلی شي چه فرښته به مسلمان له راغله نو وئیل به ئې په مشرکانوکښې عجیبه بدګمانی خوره شوې ده هغوی خو وائی که مسلمانانوحمله اوکړه نوزمونږ قدمونه نه شی اودریدې مونږ خو به تختو اوس هر یو بل ته وائی اودویم دریم ته وائی. دغه شان به د صحابه کرامو زړونه غټیدل اوپوهیدل به چه په مشرکانو کښې قوت اوطاقت نشته. بیا فرمانی چه زه به د کافرانو په زړونوکښې رعب واچوم. یعنی اې ملائکو!تاسو مؤمنان ثابت قدم اوساتئی اود هغوی زړونه کلك کړئی. تاسو کافران په سټونو باندې وهئی یو یو اندام ورله زخمی کړئی اود هغوی پښې لاسونه پریکړئی.

دفَوْقَ الْاَعْنَاقِ نه څه مراد دې::مفسرینود﴿ فَوْقَ الْاَعْنَاقِ ﴾په معنی کښې اختلاف کړې دې.بعضو په سر باندې د وهلو معنی اخستې ده او بعضو سټ باندې خو د دې د معنې تائید د دې آیت نه ملاویږی ﴿ اِذَا لَقِیْتُمُ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا زَحْفًا فَلَا تُوَلُّوْهُمُ الْاَدْبَارَ ﴾یعنی دکافرانوسره چه جنګ کونی نو هغوی په سټونوباندې وهئی اوهغوی په زنځیرونو کښې راګیرونی.د قاسم رحمه الله نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ فرمائیلی چه زه د الله تعالی په عذاب کښې د راګیرولو د پاره نه یم رالیګلې شوې یعنی د الله تعالی د طرفه عذاب لکه چه په ړومبنو امتونوبه نازلیدلو بلکه پخپله به جنګیدلوسره د هغوی سټونه وهم او قیدولو سره به هغوی عبرت ناك انجام ته رسوم. ابن جریر رحمه الله وائی سټونه وهل او کوپړئی ماتول مراد دی. په مغازی اوموی کښې لیکلی دی چه د جنګ بدر په ورځ حضور ﷺ په مقتولینو باندې تیریدلو او فرمائیلي وو(نفلق هاما)یعنی سرونه مات پراته دی نو ابوبکر صدیق رضی الله عنه ورسره وینا کولو سره جوړیوځایْ کړو نو یو شعر غوندې جوړشو (نفلق هاما من رجال اعزة علینا.وهم کانوا اعق واظلما) یعنی سرونه ئې مات پراته کوموچه په مونږ باندې غرور کولو ځکه چه دغه خلق ډیر ظالمان او نافرمان وو. نبی کریم ﷺ لکه چه د یو بیت دوه د شروع الفاظ ادا کړل او په انتظار وو چه ابوبکر رضی الله عنه دا یو شعر پوره کړی ځکه چه د حضور ﷺ د پاره د شاعر په توګه ثابتیدل مناسب نه وو. لکه څنګه چه پخپله الله تعالی فرمائیلی دی ﴿ وَمَا عَلَّمْنٰهُ الشِّعْرَ وَمَا یَنْۢبَغِیْ لَهٗ ﴾مونږ هغه شاعر نه دې جوړکړې اونه د هغه دپاره شاعر کیدل مناسب وو.د بدر په ورځ به خلقو دا مقتولین پیژندل کوم چه د ملائکو د لاسونونه مړه شوې وو ځکه چه د داسې مقتولینو زخم به د هغوی په سټونو یا د هغوی په جوړونو باندې وو اودا به داسې نشانونه وو لکه چه په اور باندې سوزولې شوی وی﴿ وَاضْرِبُوْا مِنْهُمْ كُلَّ بَنَانٍ ﴾ اې مؤمنانو! دښمنان وهئی د هغوی په جوړونو بندونوباندې دې د پاره چه پښې لاسونه ئې مات شي(بنان) جمع ده د (بنانة) هر جوړ اوهرې حصې ته (بنان) وائی. اوزاعی رحمه الله وائی چه دا مطلب دې اې فرښتو!دا کافران په مخونو او سترګو باندې اووهئی اوداسې زخمونه ورکړئی چه لکه په اور باندې سوزولي شوې وی. ځکه یوکافر د قید کولونه پس اوور وژل جائز نه دی.ابن عباس رضی الله عنه د بدر واقعه بیانوی چه ابوجهل وئیلې وو چه د قتل کولو په ځایْ مسلمانان ژوندی قیدونی دې د پاره چه تاسو هغوی ته مزه وراوڅکئی. دوی زمونږ دین ته خراب وئیل، مونږ ته ئې د لات او عزی نه د مخ اړولو پیغورونه راکول. نو الله تعالی ملائکوته فرمائیلي وو چه زه تاسو سره یم تاسو مؤمنان ثابت قدم اوساتئی. زه به د کافرانو په زړونو کښې د مسلمانانو رعب واچوم، تاسو هغوی په جوړونو اوبندونو باند اووهئی. د بدر په مقتولینوکښې د ابوجهل یوکم اویا (۶۹) نمبر وو.بیا عقبه بن ابی معیط قید کولو سره قتل کړې شو او د اویاوْ شمیر پوره شو. ﴿ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ شَآقُّوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ﴾ د دې وجه دا وه چه هغوی د الله تعالی اود الله تعالی د رسول ﷺ مخالفت کړې وو اود شرعې او ایمان د پریخودو اړخ ئې اختیارکړې وو. لفظ (شق) د (شق عصا) نه ماخوذ دې یعنی هغه لرګی دوه ټکړې کړو.ارشاد دې چه چا د الله ﷻ نه اود هغه د رسول ﷺ نه جدا والې یعنی مخالفت اختیارکړو آیا هغه نه پوهیږی چه الله تعالی په خپل مخالفت کونکوباندې غالب دې. د هغه نه په څه خبره کښې هیره وغیره

نشته د هغه د غضب څوک مقابله نه شي کولې ﴿ ذٰلِكُمْ فَذُوْقُوْهُ وَأَنَّ لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابَ النَّارِ ﴾ دا کافرانوته خطاب کيږي په دنياکښې د عذاب او تکليفونو مزه اوڅکئ او په آخرت کښې به هم د دوزخ عذابونه وي.

| | | |
|---|---|---|
| يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْٓا | اِذَا |
| انې هغه کسانو | چې ايمان مو راوړې دې | کله چې |
| انې د ايمان خاوندانو هرکله چې | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَقِيْتُمُ | الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | زَحْفًا | فَلَا تُوَلُّوْ |
| مخامخ شئ تاسو | دهغه کسانوسره | چې کفرئې کړې دې | دلښکرپه شکل کښې | نوتاسومه ګرځوئ |
| تاسو کافرو سره د لښکر په صورت کښې (په ميدان جنګ کښې) مخامخ شئ | نودهغوی د مقابلې نه | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| هُمُ | الْاَدْبَارَ ﴿۱۵﴾ | وَمَنْ يُّوَلِّهِمْ | يَوْمَئِذٍ | دُبُرَهٗٓ | اِلَّا |
| هغوئ ته | شاګانې | اوچا چې اوګرزوله هغوئ ته | په دغه ورځ | شا خپله | ما سوا (ددې نه) |
| مخ مۀ اړوئ | ..........اوچا چې هغوئ ته په داسې موقع شا کړه (اوتختيدل) البته که | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مُتَحَرِّفًا | لِّقِتَالٍ | اَوْ مُتَحَيِّزًا | اِلٰى فِئَةٍ | فَقَدْ |
| چې وې بيا راګرځيدونکې | دپاره دجنګ | يا پناه لټونکې وي | يوې ډلې سره | نو په تحقيق سره |
| د جنګې غرض دپاره يا د نورو ملګرو سره د يو ځائ کيدو دپاره داسې اوکړي، نو هغه به | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بَآءَ | بِغَضَبٍ | مِّنَ اللّٰهِ | وَمَاْوٰىهُ | جَهَنَّمُ | وَبِئْسَ |
| اخته شو | په غضب سره | دالله نه | اوځائې داوسيدو دهغه | دوزخ دې | او ډير بد دې |
| دالله ﷻ په غضب کښې راګير شي | ..........اودهغه ځائې به دوزخ شي | ..........او د ورتلو دپاره هغه | | | |

| |
|---|
| الْمَصِيْرُ ﴿۱۶﴾ |
| دغه ځائې دورتلو |
| خراب ځائې دې |

قوله تعالى: فَلَا تُوَلُّوْهُمُ الْاَدْبَارَ

د جنګ نه تيخته سخته لويه ګناه ده: په جنګ کښې شاکونکوته خبرداري ورکولې شي چه اې د ايمان خاوندانو! کله چه تاسو دواړه اونخلنئ نوخپل ملګرې پريخودلو سره تيخته مه کوئ. اوکه د چلول د پاره تيخته وي لکه چه اوويريدل چه دوي پسې شي بيائې يوازې راګيرکړي او واپس شي حمله اوکړي او قتل ئې کړي نو داسې مصلحت کښې تختيدلو کښې څه بدي نشته. يا د دې د پاره اوتختي چه د مسلمانانو نوډلې سره ملاوشي چه د هغوي امداد اوکړي يا هغوي د دوي امداد اوکړي نو بياهم جائز دي څکه چه هغوي د خپل امام په پناه کښې تلل غواړي. حضرت عبدالله بن عمرؓ نه روايت دې چه زه دحضورﷺ د ليکلې شوي يو وړوکي غونډې لښکر سپاهي وم په خلقو کښې ګړبړ پريوتلو نو زه هم اوتختيدم. اوس مونږ ته احساس اوشو چه مونږ خود جنګ نه تختو اود الله تعالى د غضب مستحق شو اوس څه اوکړو؟ مونږ مشوره اوکړه چه مدينې ته څو او حضورﷺ ته پيش کيږو که زمونږتوبه حضورﷺ قبوله کړه نو چه څه فرمائي کنې مونږ به چرته هم اوځو اومخ به ورته نه ښايو نو مونږ د



ماسپخين د مانځه نه وړاندې حضورﷺ له راغلو. حضورﷺ تپوس اوکړو تاسو څوک يئ؟ مونږ اووئيل مونږ شاکونکې تختيدونکی خلق يو. حضورﷺ اوفرمائيل چه نه تاسو خلق خو خپل مرکز طرف ته راتلونکې يئ.زه خوستاسو اوستاسو دټولې مؤمنانومحبوب يم. مونږ د دې په اوريدو باندې د حضورﷺ لاسونه ښکل کړه.(۱) ابوداوُد دا نور زياتی ونيلی دی چه حضورﷺ دا آيت تلاوت کړو ﴿أَوْ مُتَحَيِّزًا إِلَىٰ فِئَةٍ﴾ اهل علمو د ﴿عكارون﴾ معنی ﴿عرافون﴾ خودلې ده.يعنی د لرې نه کتونکی پوهان خلق. ابوعبيده د ايران په زمکه کښې په يوپل باندې قتل کړې شو نوحضرت عمر بن خطابؓ فرمائيلې وو چه هوښيارتوب نی کړې وې نوهغه ته د تيختې موقع وه.زه د هغوی امير او ترونکې ووم ماله ولې رانغلو. حضرت عمرؓ اوفرمائيل اې خلقوا په دې آيت سره تاسو په غلط فهمئې کښې مه پريوځئ. دا آيت د بدر د ورځ د پاره وواو په هغه وخت کښې هر مسلمان يو ډله وه. نافع ﷫ ابن عمرؓ ته اووئيل مونږ خلق دښمن سره د جنګ په وخت کښې ثابت قدم نه شو پاتې کيدې او مونږ ته نه ده معلومه چه زمونږ مرکز کوم يودې. امام كه جنګی مرکز، نو وئی وئيل مرکز خو رسول اللهﷺ وو. ما اووئيل چه الله تعالی فرمائی ﴿إِذَا لَقِيتُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا زَحْفًا﴾ نو وئی وئيل دا آيت د بدر د ورځ د پاره نازل شوې دې نه د دې نه د وړاندې د پاره اونه د دې نه د پس د پاره.د ﴿أَوْ مُتَحَيِّزًا﴾ معنی ده د نبی کريم ﷺ طرف ته پناه اخستونکی. دغه شان نن هم يو سړې په جنګ کښې خپل امير يا ملګرو طرف ته پناه اخستې شی خوکه دا تيخته د دې سبب نه علاوه د بل څه سبب د پاره وی نودا حرام دی او ګناه کبيره ده.

**اووه هلاکوونکی څيزونه:** دحضرت ابوهريره ؓ نه روايت دې چه حضورﷺ اوفرمائيل اووه هلاك کونکې څيزونونه بچ کيږه: (۱) شرك بالله (۲) جادوکولونه (۳) څوك ناحق قتل کولونه (۴) سودخوړلو نه (۵) د يتيم مال خوړلونه (۶) په جهاد کښې شا کول او تختيدل (۷) پاکو او بې ګناه ښځوباندې الزام لګول. (۲) دا خبره بل شان هم ثابته ده چه دا آيت د بدر متعلق نازل شوې. د دې د پاره الله تعالی فرمائيلی چه هغه تختی نو د الله تعالی غضب به اوړی نو تختی به. د هغه ځائ دوزخ دې چه ډير خراب ځائ د اوسيدو دې. بشير بن معبد ؓ وائی چه زه د بيعت د پاره حضورﷺ له لاړم نود بيعت د پاره حضورﷺ دا شرط اولګولوچه د﴿لااله الاالله﴾ ګواهی ورکړه زما رسالت اومنه، مونځ پابندئی سره کوه، زکوة ورکوه، حج کوه، د رمضان روژې ساته او دا هم چه د الله تعالی په لارکښې به جهاد کوې. ماونيل يارسول اللهﷺ دې کښې ماته دوه خبرې سختې دی يو دا چه په جهاد کښې څوك شاکړې او تيخته اوکړې نود الله تعالی غضب به په هغه نازليږی اوما سره ويره ده چه چرته د مرګ د ويرې ماته دا ګناه اونه شی بل صدقه په الله تعالی قسم ماسپيرۀ صرف څه لږ ګډی بيزې دی بل څه نشته او لس اوبښې دی د کومو پئی چه اولشم، پخپله اوڅکم او په نورو اوڅکم او په دې باندې سورلی اوکړم. نو حضورﷺ زما لاس اونيولو او وئی فرمائيل چه جهاد به هم نه کوې او صدقه به هم نه کوې نو بيا به د جنت څنګه حقدارکيږې ماواوونيل حضورﷺ ماته منظور ده په هرشرط باندې بيعت کوم. دا حديث غريب دې او په صحاح ستة کښې موجود نه دې. نبی اکرمﷺ فرمائيلی د دريوکوتاهو په موجودګئی کښې نيك عمل هم کار نه شی ورکولې (۱) شرك بالله (۲) د مورپلار نافرمانی او سرکشی (۳) د جنګ د ميدان نه تيخته.(۳) داحديث هم غريب دې.

---

[1]) ابوداوُد كتاب الجهاد باب فى التولى يوم الزحف: ۲٦٤٧، ترمذى:۱۷۱٦، ابن ماجه:۳۷۰٤مختصرًا جدًا، الادب المفرد:۹۷۲، احمد:۲/۷۰، مسندحميدى:٦٨٧، بيهقى: ۹/۷٦.

[2]) صحيح بخارى كتاب الوصايا باب قول الله تعالى ﴿ان الذين ياكلون اموال اليتمى...﴾:۲۷٦٦، صحيح مسلم:۸۹،ابوداوُد:۲۸۷٤، ابن حبان:۵٥٦۱، بيهقى:۸/۲٤۹.

[3]) المعجم الكبير:۱٤۲۰، مجمع الزوائد:۱/۱۰٤.

د حضرت زیدؓ نه روایت دي چه حضورﷺ فرمائیلي چا چه ﴿استغفرالله الذي لااله الاهوواتوب اليه﴾ اووئیل د هغه ګناه به اوبښلې شي سره د دې که د جنګ نه د تیختې ګناه هم وی.[1] دا حدیث هم غریب دې. حضرت زید ؓ د نبیﷺ خادم د دې نه علاوه بل حدیث نه دې بیان کړې. بعضو دا حکم لګولې دې چه د جنګ نه تیخته په صحابه کرامو باندې حرام وه ځکه په هغه وخت کښې جهاد په هغوی باندې فرض وو. بعضو وئیلي چه صرف په انصارو باندې فرض وو ځکه چه بیعت هم هغوی کړې وو چه په سختئ او راحت هر حال کښې به مونږ منونکی یو او دا هم وئیلي شوی دی چه دا آیت صرف د اهل بدر سره مخصوص دې. دلیل ئې دا پیش کړې دې چه هغه وخته پورې د مسلمانانو یو باقاعده مستقل او صاحب شوکت ډله نه وه کوم څه چه وو دغه یوموټې خلق وو د دې د پاره د داسې سخت حکم ضرورت وو.د حضورﷺ دا حدیث په دې حالت باندې رڼرا اچوی چه یاالله! که تا دا یو موټې ډله هم هلاکه کړه نو په دنیاکښې به ستا عبادت کونکې څوك پاتې نه شي. د حضرت حسن بصری رحمه الله نه روایت دې چه د بدر په ورځ دا خبره ضروری وه څوکه نن څوك د خپل امام طرف ته یا د خپلې قلعه طرف ته پناه واخلي نو هیڅ حرج نشته. په یوم بدر کښې د تختیدونکود پاره الله تعالی دوزخ ګرځولې وو خو استثناء ئې هم کړې وه که دښمن له دهوکه ورکولو پاره د حکمت عملئ په خاطر خپل جماعت ته د محفوظ کیدلو دپاره داسې اوکړی نو هیڅ بدوالې نشته.بیادې نه پس جنګ اُحد اوشو نوونې فرمائیل ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ تَوَلَّوْا مِنْكُمْ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعٰنِ﴾ بیا اووه کاله پس جنګ حنین اوشو نو وئې فرمائیل ﴿ثُمَّ وَلَّيْتُمْ مُّدْبِرِيْنَ﴾ او ﴿ثُمَّ يَتُوْبُ اللّٰهُ مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ﴾ او بیا ئې اوفرمائیل ﴿وَمَنْ يُّوَلِّهِمْ يَوْمَئِذٍ دُبُرَهٗٓ﴾ دا آیت د اهل بدر باره کښې نازل شوې دې.[2] د دې تولې تشریح نه ثابتیږي چه غیر اهل بدر هم د جنګ په وخت کښې تیخته اوکړی نو حرام کیدل پکار دی. سره د دې چه دا آیت په وخت د جنګ بدر نازل شوې وو خو چه کله دا په اووه هلاك کونکوڅیزونوکښې شمیرکړلې شو نو حرام کیدل پکار دی. والله اعلم.

| فَلَمْ تَقْتُلُوْهُمْ | وَلٰكِنَّ اللّٰهَ | قَتَلَهُمْ | وَمَا |
|---|---|---|---|
| نونه دی وژلي تاسوهغوئ | لیکن الله | وژلي دی هغوئ | اونه دي |
| (حقیقت دادي) چي دوئ تاسونه وو قتل کړي، بلکه الله ﷻ قتل کړي وو | | | |

| رَمَيْتَ | اِذْ | رَمَيْتَ | وَلٰكِنَّ اللّٰهَ | رَمٰى | وَلِيُبْلِيَ |
|---|---|---|---|---|---|
| ګذار کړي تا | کله چي | ګذار کړي وي تا | لیکن الله | ګذار کړي وي | اودپاره ددي چي امتحان اوکړي |
| او تا (موټئ خاوري) نه وې ویشتي څه وخت چي تا ویشتي وې، بلکه الله ﷻ ویشتي وې او د دي دپاره | | | | | |

| الْمُؤْمِنِيْنَ | مِنْهُ | بَلَآءً | حَسَنًا | اِنَّ اللّٰهَ | سَمِيْعٌ | عَلِيْمٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په مومنانو | د خپل طرفه | ازمیښت | ښکلی | بیشکه الله | اوریدونکي دی | اوپوهه دي |
| چي مسلمانان دیوغټ امتحان نه په کامیابئ سره اویستي شي، بیشکه الله ﷻ اوریدونکي او عالم دي | | | | | | |

| ذٰلِكُمْ | وَاَنَّ اللّٰهَ | مُوْهِنُ | كَيْدِ | الْكٰفِرِيْنَ |
|---|---|---|---|---|
| دا (معامله خو) ستاسو ده او | بیشکه الله | کمزوري کونکي دي | تدبیر | د کافرانو |
| دامعامله خو تاسو سره اوشوه، پاتي شو کافران نو دهغوئ تدبیرونه الله ﷻ کمزوري کړل | | | | |

[1] ابوداؤد کتاب الوتر باب فی الاستغفار:١٥١٧وهوحسن، ترمذی:٣٥٧٧، طبرانی:٤٦٧٠.

[2] ابوداؤد کتاب الجهاد باب فی التولی یوم الزحف:٢٦٤٨وسنده صحیح.

**قوله تعالي:: وَلَٰكِنَّ اللَّهَ قَتَلَهُمْ**

**دحق اوباطل معركه، په بدر كښې كاميابى دَ الله ﷻ په نصرت سره ده:**- پدې خبره رڼړا اچولې شى چه د بندګانود افعالو خالق الله تعالى دې اوچه كوم نيك كارونه د بندګانونه ظاهريږى هغه هم الله تعالى نيك جوړكړى دى خكه چه توفيق هم هغه وركړې وى اود كار كولو همت او قدرت هم هغه وركړې وى. د دې د پاره ارشاد كيږى چه دا كافران تاسو نه دى قتل كړى بلكه الله تعالى قتل كړى دى.ستاسو په طاقت كښې دا چرته وه چه دكمې سره د دښمن دومره لوئ شمير فوځ ته شكست وركړې داكاميابى هم الله تعالى تاسو ته دركړه. لكه چه فرمانى ﴿وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللَّهُ بِبَدْرٍ وَأَنتُمْ أَذِلَّةٌ﴾ يعنى په بدركښې الله تعالى تاسوكامياب كړنې سره د دې چه تاسو ډير كمزورى وئې. د الله تعالى ارشاد دې ﴿ لَقَدْ نَصَرَكُمُ اللَّهُ فِي مَوَاطِنَ كَثِيرَةٍ ۙ وَيَوْمَ حُنَيْنٍ ۙ إِذْ أَعْجَبَتْكُمْ كَثْرَتُكُمْ فَلَمْ تُغْنِ عَنكُمْ شَيْئًا وَضَاقَتْ عَلَيْكُمُ الْأَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ ثُمَّ وَلَّيْتُم مُّدْبِرِينَ ﴾ يعنى الله تعالى په اكثروموقعوباندې ستاسو امداد كړې دې.دحنين په جنګ كښې تاسو خپل ډيروالې مغروره كړې وئې خودې زياتوالى تاسوته هيڅ فائده درنه كړه. زمكه سره د دومره كولاو والى په تاسو تنګه شوه اوتاسو شا كړه اوتختيدئى. الله تعالى پوهيږى چه كاميابى د شمير په زياتوالى نه ده او نه د وسلو په زيات والى ده كاميابى خو صرف د الله تعالى دطرف نه ده. لكه چه فرمانى﴿كَم مِّن فِئَةٍ قَلِيلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً كَثِيرَةً بِإِذْنِ اللَّهِ﴾ ډير خل داسې كيږى چه وړوكې ډله په لويه ډله باندې غالب كيږى.

**نبى كريم ﷺ څه څيز ويشتلې وو،دمفسرينو اقوال؟**:بيا يو موټى خاورې باره كښې الله تعالى نبى اكرم ﷺ ته فرمانى كومه چه په جنګ بدركښې تا د كافرانو په مخونو اچولې وه، چه كله حضورﷺ د تضرع او عاجزئى او دعا كولو نه پس دخپلې عريش كوټګئ نه بهر راووتلو او دا خاوره ئى د كافرانوطرف ته اوغورزوله او وئى فرمانيل ستاسو مخونه دې وران شى. بيائې اصحابو ته حكم اوكړو زرحمله اوكړنى. د الله تعالى په قدرت دا خاوره او شنګې د مشركانو په ستركوكښې پريوتل. يو هم داسې نه وو چه په دې سره ورته تكليف نه وو رسيدلې او داسې څوك چه دجنګ نه قاصرپاتې نه شو. ددې د پاره فرمانى ﴿وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ رَمَىٰ﴾ يعنى تا خاوره نه وه غورزولې الله تعالى غورزولې وه، په ستركوكښې خاوره اچولو سره تا هغوى سرټيټې كړې نه وو هم الله تعالى كړې وو.

د حضرت ابن عباس ﷺ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ د بدر په ورځ خپل دواړه لاسونه اوچت كړل اود الله تعالى نه ئى دعا اوغوښتله ياالله! كه دا يوموټى خلق مړه شى نو څوك به ستا نوم اخستونكې پاتې شى نو جبرائيل ﷺ راغلو او وئى وئيل يو موټې خاوره د دې كافرانو طرف ته اوغورزوه. نو حضورﷺ هم داسې اوكړل. د كافرانو څله پوزه ستركې د خاورو نه ډكې شونې اود دوړو نه ډكې سيلئى نه اوويريدل او اولټه پښې اوتختيدل او ماتې اوخوړلو(١) مسلمانان د هغوىډ قتل كولودپاره هغوى پسې لاړل او قيدئى كړل. كافرانو ته دا ماتې د حضورﷺ د معجزې په سبب اوشوه. عبدالرحمن بن زيد ﷺ وائى چه حضورﷺ درې كاڼى ويشتې وو يو مخامخ دوه كاڼى د دښمن ښى طرف ته اوكس طرف ته غورزولې وو. دا د بدر د ورځ واقعه ده.حضورﷺ داسې د حنين د جنګ په ورځ هم كړى وو. حكيم بن حزام ﷺ نه روايت دې چه د بدر په ورځ مونږ د آسمان نه يو آواز واوريدو لكه په يو تال كښې چه كاڼى اچولې خوزوى. دا د حضورﷺ د خاورواو شګو غورزولو آواز وو. نو مونږ ته دا نقصان اوشو.

دلته دوه نور اقوال هم دى چه ډير غريب دى:

(١) ابن جبيرﷺ فرمانى چه رسول اللهﷺ يوه لينده راوغوښته داډيره اوږده وه. حضورﷺ د دويمې راوړو حكم اوكړو. بله راوړلې شوه نو حضورﷺ په دې باندې د قلعه طرف ته يو غشې اوويشتلو دا غشې

---

(١) الطبرى:١٢/٤٤٥.

تاویدلو او د قبیلې سردار ابن ابی حقیق پرې اولګیدو او هغه وخت هغه په خپله قلعه کښې په خپله بستره کښې وو. هم د دې په بنا باندې الله تعالی اوفرمائیل﴿ وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ رَمَىٰ ۚ وَلِيُبْلِيَ الْمُؤْمِنِينَ مِنْهُ بَلَاءً حَسَنًا ۚ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴾داحدیث ډیر غریب دې. ممکن ده چه راوی ته شك شوې وی یا د هغه مراد دا وی چه دا آیت عام دې اودې واقعی ته هم شامل دې. ګنی داخو ښکاره خبره ده چه د سورة انفال پدې آیت کښې د جنګ بدرذکر دې نودا واقعه هم د دې جنګ بدر ده اودا خبره بالکل ښکاره ده.

(۲) د زهری رحمه الله نه دا د احد د جنګ په ورځ حضور ﷺ ابی ابن خلف په یوه نیزه وهلې وو. دا سرې په زغره اود اوسپنې په سازوسامان کښې ډوب وو خودا نیزه د هغه په تالوکښې اولګیده اوهغه د اس نه راپریوتلو. د دې نه څو ورځې پس هم د دې تکلیف نه د هغه مرګ واقع شو. (۱) هغه د دنیاوی عذاب سره د اخروی عذاب هم مستحق شو. د دې دواړو امامانونه داسې روایت ډیر غریب دې. کیدې شی چه د دې دواړو هم دا مقصد وی چه آیت عام دې او خاص واقعې سره متعلق نه دې. بلکه چه کله داسې وی نو هره واقعه هم د دې آیت سره متعلق کیدې شی.﴿ وَلِيُبْلِيَ الْمُؤْمِنِينَ مِنْهُ بَلَاءً حَسَنًا ﴾ دې د پاره چه مؤمنان د الله تعالی دا نعمت معلوم کړی چه دښمنان د هغوی نه په شمیر کښې د ډیرزیاتی باوجود الله تعالی مسلمانانوته غلبه ورکړه دې د پاره چه هغوی د الله تعالی شکر اداکړی. په حدیث شریف کښې دی چه الله تعالی زمونږ نه ډیر ښه امتحان واخستو﴿ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴾ الله تعالی دعاګانې اوریدونکې دې او پوهیږی چه څوك د امداد مستحق دې او څوك نه دې.﴿ ذَٰلِكُمْ وَأَنَّ اللَّهَ مُوهِنُ كَيْدِ الْكَافِرِينَ ﴾ دا د حاصل شوې نصرت دویم بشارت او زیرې دې چه الله تعالی معلوموی چه هغه د کافرانو چالونه ناکامه کونکې دې او په راتلونکی وخت کښې هغوی ذلیل کونکې دې اوهغوی تباه اوبرباد کیدونکی دی.

| إِن تَسْتَفْتِحُوا | فَقَدْ | جَاءَكُمُ | الْفَتْحُ ۖ | وَإِن تَنتَهُوا |
|---|---|---|---|---|
| که غواړئ تاسو فتحه | نو په تحقیق سره | راغله تاسوته | فتح | اوکه منع شوئ تاسو |
| (کافروته اووایه) که تاسوفیصله غوښتله نوفیصله خو درته مخې ته راغله | | | | اوکه اوس هم منع شوئ |

| فَهُوَ | خَيْرٌ | لَّكُمْ ۖ | وَإِن | تَعُودُوا | نَعُدْ ۚ |
|---|---|---|---|---|---|
| نوداکارا | بهتردې | دپاره ستاسو | اوکه چرې تاسو بیا | اوګرزئ | نومونږ به هم راوګرزو (سزا ته) |
| نوداخبره ستاسودپاره ډیره بهتره ده | | | اوکه تاسو بیا جنګ ته راواپس شوئ | | نومونږ به هم واپس کیږو |

| وَلَن تُغْنِيَ | عَنكُمْ | فِئَتُكُمْ | شَيْئًا | وَلَوْ كَثُرَتْ ۙ | وَأَنَّ اللَّهَ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوهرګز به دفع نه کړی | ستاسو نه | ډله ستاسو | هیڅ څیزا | اګرکه ډیره لویه وی | اوبیشکه الله |
| اوتاسو ته خپله ډله هیڅ کله فائده نشی در کولې | | | | اګر که ډیره زیاته وی | اوبیشکه الله ﷻ |

| مَعَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿١٩﴾ |
|---|
| دمومنانو سره دې |
| مومنانو سره مل دې |

**قوله تعالی:: فَقَدْ جَاءَكُمُ الْفَتْحُ**

**په حقه څوک دی؟فیصله اوشوه:**- کافرانوته خطاب دې که تاسو فتح غواړئ او الله ﷻ ته وائې چه زمونږ

---

(۱) حاکم:۲/۳۲۷.



او دښمنانوپه مینځ کښې فیصله اوکړې نو چه څه تاسو غوښتل هم هغه شان اوشو. اې الله! چا چه مونږ سره تعلق ختم کړې دې او مونږ ته غیر مانوس خبرې پیش کوی صبا له دوی ذلیل کړې داځو هم ددې کافرانو غوښتنې وې. نو داآیت نازل شو ﴿اِنْ تَسْتَفْتِحُوْا فَقَدْ جَآءَكُمُ الْفَتْحُ﴾ تاسو فتح غوښتله نو واخلئ فتح راغله. سدی ﷫ وائي چه مشرکان کله د جنګ بدر د پاره دمکې نه روان شو نود کعبې غلاف ئې اونیولو او د الله تعالی نه ئې دعا غوښتله او ونیل ئې اې الله! په دوارو ډلوکښې چه کومه تاته نیزدې او غوره ده اودچا قبله چه بهتر قبله ده د هغوی امداد اوکړه. نو الله تعالی ارشاد فرمائي چه تاسو څنګه وائې نو زه هم هغه شان ستاسو امداد کوم او هغه امداد به محمد ﷺ سره وی.د الله ﷻ ارشاد دې ﴿وَاِنْ تَنْتَهُوْا فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۚ وَاِنْ تَعُوْدُوْا نَعُدْ﴾ یعنی که تاسو د کفر نه منع شئ نو په دې کښې ستاسو د پاره د دین او دنیا دواړه ښیګړې دی خو که تاسو بیا کفر اوشرك اوکړو نومونږ به هم دوباره سزا درکوو اوکه د کفر او ضلالت تاسو بیا شروع اوکړه نو مونږ به هم بیا داسې مزه دراوڅکو او بیا به محمد ﷺ ته فتحه او نصرت ورکړو اوستاسو ډله که هرڅومره ولې نه وی ستاسو به هیڅ په کار رانشي. ځکه چه الله تعالی چا سره وی په هغوی څوك غالب راتلې نه شي.﴿ وَاَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ الله تعالی مؤمنانوسره دې اوهم دغه د نبی ﷺ ډله ده.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ

| انې هغه کسانو| چې ایمان موراوړې دې| اطاعت اوکړې د الله| او د رسول دهغه

| انې د ایمان خاوندانو ! دالله ﷻ اودهغه درسول ﷺ حکم تابعداری اوکړې

وَلَا تَوَلَّوْا عَنْهُ وَاَنْتُمْ تَسْمَعُوْنَ ۝ وَلَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ

او مخ مه اړوئ |دهغې نه|حال دا چې تاسو| اورئ | او مه کیږئ تاسو | پشان دهغه کسانو

اودحکم اوریدونه پس ترې مخ مه اړوئ|.......................اودهغه چا په شان مه کیږئ چې دا دعوی

قَالُوْا سَمِعْنَا وَهُمْ لَا يَسْمَعُوْنَ ۝ اِنَّ شَرَّ

چې وې ونیل | چې واوریدل مونږ |اوحال دا چې هغوئ| نه اورئ | بیشکه چې | ډیر ناکاره

کوی چه مونږ واوریدل| حال دا چې هیڅ ئې نه وی اوریدلی | ......................د الله په نیز بدترین

الدَّوَآبِّ عِنْدَ اللّٰهِ الصُّمُّ الْبُكْمُ الَّذِيْنَ لَا يَعْقِلُوْنَ ۝

د سا لررنکو نه | په نیز د الله | کاڼه | ګونګیان | هغه خلق دی | چې دعقل نه کارنه اخلی

سالرونکی هغه کاڼه اوګونګیان خلق دی .......................چې په هیڅ نه پوهیږی

وَلَوْ عَلِمَ اللّٰهُ فِيْهِمْ خَيْرًا لَّاَسْمَعَهُمْ ۭ وَلَوْ

اوکه معلوم وې الله ته |په دوئ کښې | څه خیر |نو توفیق د اوریدو به ئې ورکړې وو | اوکه

اوکه الله ﷻ ته په دوئ کښې څه خوبی ښکاریدې | نود آورید وتوفیق به ئې ورکړې وې

اَسْمَعَهُمْ لَتَوَلَّوْا وَّهُمْ مُّعْرِضُوْنَ ۝

د اوریدو توفیق ورته ورکړی|نو خامخا به اوګرځی دوئ|اودوئ| مخ اړونکی دی |

خوددوئ داحال دې،که الله ﷻ داورید و توفیق ورکړی |نومخ به ترې واړوی |او په اړخ به اوګرځی|

**قوله تعالى :: اِنَّ شَرَّالدَّوَآبِّ عِنْدَاللّٰهِ**

**دَ الله ﷻ په نيزبدترين مخلوق اوددي په مراد کښې د مفسرينو اقوال:-** مؤمنانوته د الله تعالى او رسول الله ﷺ د اطاعت او مخالفت ترک کولو حکم کيږي. اودا چه کافرانوسره مشابهت مه پيداکوئ. د دې د پاره فرمائي ﴿وَلَا تَوَلَّوْا عَنْهُ﴾ يعنى اطاعت اوامتثال امر مه پريږدئ ﴿وَاَنْتُمْ تَسْمَعُوْنَ﴾ خکه تاسو پوهيږئ چه نبي اکرم ﷺ د کومې خبرې طرف ته راغوښتنه کوی او هغه خلقوسره مشابهت مه پيدا کوئ چه وائي او مونږ واوريده حالانکه هغوی نه اوري. بعضې وائي چه دې نه منافقان مراد دی د چا طريقه چه هم دا وه چه په خله به ئې ونيل مونږ اورو او قبلولو خو خاورې به ئې اوريدل. بيا خبرداري ورکوی چه د بنيادمودا قسم فطرتًا د ټول مخلوق نه بدتر دی. په څناورو او خاروکښې بدترين هغه دی چه د حق خبرې اوريدو کښې کانړه دی، حق خبره نه کوی ګونګيان دی. عقل نه لری خکه چه حق خبره نه پيژنی. دا بدترين مخلوق دې او دا کافران انسانان دی. څناورخو چه په کوم فطرت پيدا شوی هم په هغه لار روان دی لکه د الله تعالى تابعدار دی. انسان خو فطرتًا د عبادت د پاره پيداکړې شوې دې خو بيا هم دې کفر کوی يعنى د فطرت په خلاف کولو د څناورو نه هم بدتر دې په دې وجه دوی له ئې د څناورو سره تشبيه ورکړه او وئې فرمائيل چه د کافرانو مثال د هغه څناورو په شان دې چه د آواز کونکی په مطلب خو هيڅ نه پوهيږی صرف آواز ئې اوری. بيا فرمائي دا کافر خود څناورو نه هم ډير بدتر دې اوهم داسې خلق په ډيرغفلت کښې دی. ونيلې شي چه دې نه مراد د قريشو د عبدالدار خلق دی[1] اود بعضو خيال دې چه دې نه منافقان مراد دی. خو په مشرکانواو منافقانوکښې څه منافات نشته خکه چه دا دواړه ډلې بې عقله او بې فهمه دی او په دوی کښې د نيك عمل کولو هډو صلاحيت نشته. بيا فرمائي چه که الله تعالى ته معلومه وې چه دوی به په پوهه کولو پوهه شي او په دوی کښې څه خير کيدې شو نو الله تعالى به دوی ته اورولې يعنى د اوريدو طاقت به ئې ورکړې وو. د کلام تقدير دا دې چه په دوی کښې خير نشته نو په دې وجه دوی نه پوهيږی او ﴿ولوفرضنا﴾ که الله تعالى دوی ته اوروی هم نو بيا به هم دا کمبخت نيغه لار اختيار نه کړی او بيا به هم ډډه کوی.

| دَعَاکُمْ | اِذَا | وَلِلرَّسُوْلِ | لِلّٰهِ | اسْتَجِيْبُوْا | اٰمَنُوْا | يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوبلې تاسو | کله چې | اودرسول | دالله | قبول کړئ حکم | چې ايمان موراوړې دي | انې هغه کسانو |
| خکه چې تاسو هغه خبرې ته رابلې چې | | | ......... | اود رسول د حکم مننه اوکړئ | | انې مومنانو! دالله ﷻ |
| الْمَرْءِ | بَيْنَ | يَحُوْلُ | اَنَّ اللّٰهَ | وَاعْلَمُوْٓا | يُحْيِيْكُمْ | لِمَا |
| دانسان کښې | پرده کيږي په منځ | چې بيشکه الله | | اوپوهه شئ | چې ژوندی کوی تاسو | هغه څيز ته |
| دسړي او دهغه د | | | اوياد ساتئ چې الله ﷻ | | ژوندي کيږئ | چې تاسوپرې (روحاني طور) |
| | تُحْشَرُوْنَ | | اِلَيْهِ | وَاَنَّهٗٓ | | وَقَلْبِهٖ |
| | تاسوجمع کيږئ | | خاص هم هغه ته به | اوبې شکه شان دادې چې | | اودزړه دهغه کښې |
| | | | اوبيشکه تاسوټول به هغه ته جمع کولې شئ | | | زړه په مينځ کښې هم حائل کيږي |

**قوله تعالى:: اِذَا دَعَاکُمْ لِمَا يُحْيِيْكُمْ**

**دَ ژوند نجات اوبقا دَ رسول الله ﷺ په خبره منلو کښې دي:-** اې د ايمان خاوندانو! هم ستاسو د اصلاح او مصلحت په خاطر که نبی کريم ﷺ تاسو راوغواړی نو زر ئې قبلوئې اودحکم په پوره کولوکښې تيزی

[1] صحيح بخاری کتاب التفسير سورة الانفال باب ﴿ان شرالدوآب عندالله الصم البكم الذين لايعقلون﴾: ٤٦٤٦.

کوني. ابوسعید ابن معلی ﷺ وائی چه ما مونځ کولو حضور ﷺ تیریدو. هغوی ﷺ ما ته اواز راکړو خو زه په مانځه کښې د کیدو په سبب لاړ نه شوم. مونځ کولونه پس زه اورسیدم نو وني فرمائیل ولې تراوسه پورې رانغلې آیا الله تعالی تاسو ته نه دی وئیلي چه د الله تعالی رسول ﷺ کله هم ستاسو د بنیګړې د پاره تاسو راغواړي نوزر حاضریږئ. بیا ئې اوفرمائیل چه زه د دې ځائ دتلونه وړاندې تاته د قرآن پاك د یو عظیم سورت تعلیم درکوم. بیا حضور ﷺ روان شو نو ما ورته یادګیرنه اوکړه. مقصد دزرحکم مثل دی او روایت دې چه دا واقعه د ابوسعید خدری ﷺ ده. حضور ﷺ هغه سورت سورة فاتحه اوخودله او وني فرمائیل "سبع مثانی" ده یعنی اووه آیاتونه دی چه هر وخت په مانځه کښې لوستلې شی ([1]) ددې حدیث بیان دسورة فاتحې په تفسیرکښې تیرشوې دې. مجاهد رحمه الله وائی چه﴿ لِمَا يُحْيِيكُمْ ﴾ معنی ده دحق په خاطر. قتاده رحمه الله وائی چه هم دغه قرآن دې په کوم کښې چه د حیات نجات او بقا ده. سدی رحمه الله وائی چه هم په اسلام راوړلوکښې ژوندون دې اوپه کفرکښې مرګ دې یا دا چه کله نبی اکرم ﷺ تاسو د جنګ د پاره راوغواړی دځه په ذریعه چه الله تعالی تاسو ته عزت درکوی ځکه چه د دې نه اول تاسو ذلیل وئې اود کمزورئې نه پس ئې تاسو له طاقت درکړو اواول تاسو د کافرانونه مغلوب وئې بیا تاسو په هغوی باندې غالب شوئې. د الله تعالی قول دې ﴿وَاعْلَمُوٓا أَنَّ اللّٰهَ يَحُولُ بَيْنَ الْمَرْءِ وَقَلْبِهٖ﴾ پوهه شئ چه الله تعالی د انسان او د انسان د زړه په مینځ کښې حائل دې. ابن عباس ﷺ وائی چه هغه پرده ده د مؤمن اوکفر په مینځ کښې اود کافر او ایمان په مینځ کښې چه مؤمن کفر کولو ته نه پریږدی اوکافر ایمان راوړو ته نه پریږدی([2]) مجاهد رحمه الله فرمائی چه هغه داسې حائل دې چه کافر پوهیدوله نه پریږدی. سدی رحمه الله وائی څوك هم د هغه قدرت نه لری چه دهغه د اجازت نه بغیر کفر اوکړی یا ایمان راوړی. قتاده رحمه الله وائی چه دا آیت د دې آیت په شان دې چه ﴿وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنْ حَبْلِ الْوَرِيدِ﴾ اوډیر زیات احادیث د دې په مناسبت کښې وارد دی.دحضرت انس بن مالك ﷺ نه روایت دې چه حضور ﷺ به اکثر فرمائیل ﴿يامقلب القلوب ثبت قلبي على دينك﴾ اې د زړونو بدلونکیه زما زړه په خپل دین باندې ثابت اوساته نومونږ وئیل یارسول الله ﷺ مونږ په تاسو او قرآن باندې ایمان راوړلې دې. آیا ستاسو په مونږ باندې څه اندیښنه ده؟ وني فرمائیل او ځکه چه څه عجیبه ده چه تاسو بدل شئ. ځکه چه د خلقو زړونه د الله تعالی په دوو ګوتوکښې وې چه کله اوغواړی نو بدل ئې کړی([3]) نواس بن سمعان ﷺ وائی چه حضور ﷺ فرمائیل چه هر یو زړه د الله تعالی د دوو ګوتو په مینځ کښې وی که الله تعالی دا نیغ ساتل غواړی نو هغه نیغ وی اوکه غواړی چه وران ئې کړی نو هغه زړه وران شی. او وني فرمائیل چه میزان د الله تعالی په لاس کښې دې چه غواړی نو سپك ئې کړی او چه غواړی نو دروندئې کړی.([4])

ام سلمه رضي الله عنها وائی ما عرض اوکړو یارسول الله ﷺ آیا زړونه بدلیږی وني فرمائیل او که الله تعالی غواړی نود انسان زړه نیغ او مستقیم ساتی اوکه غواړی نو هغه کوږ کړی په دې وجه مونږ د الله تعالی نه دعا غواړو چه ﴿ رَبَّنَا لَا تُزِغْ قُلُوبَنَا بَعْدَ إِذْ هَدَيْتَنَا وَهَبْ لَنَا مِن لَّدُنكَ رَحْمَةً ۚ إِنَّكَ أَنتَ الْوَهَّابُ﴾ اې الله تعالی په هدایت باندې د کولونه پس زمونږ زړونه مه کږه وه اود خپل طرف نه زمونږ د پاره رحمت راولیګه ته ډیر وهاب او بښونکې ئې. ما اووئیل یارسول الله ﷺ ما ته داسې دعا راوښایه چه د ځان د پاره ئې غواړم نو وني

[1]) صحيح بخاری کتاب التفسير سوره الانفال باب ﴿ياايهاالذين امنوا استجيبوالله وللرسول﴾ :٤٦٤٧، ابوداؤد:١٤٥٨، ابن ماجه:٣٧٨٥، احمد:٢١١/٣، بن حبان:٧٧٧.

[2]) حاکم:٣٢٨/٢.

[3]) ترمذی کتاب القدر باب ماجاء ان القلوب بين اصبعي الرحمن: ٢١٤٠،احمد:١١٢/٣، مسندابي يعلی:٣٦٨٧، حاکم:٥٢٦/١.

[4]) ابن ماجه المقرقومه باب فيما انكرت الجهيمه:١٩٩وسنده صحيح السنن الكبری للنسائی:٧٧٣٨، احمد:١٨٢/٤، السنه لابن ابی عاصم:٢١٩، ابن حبان:٩٤٣، حاکم:٥٢٥/١.

فرمائیل داسې دعا غواړه. (اللهم رب النبي محمد اغفرلي ذنبي واذهب غيظ قلبي واجرني من مضلات الفتن ما احييتني) يعني اې د محمد ﷺ ربه ! زما ګناه معاف کړه او زما د زړهٔ غصه ختمه کړه ، او ما د فتنو د ګمراهو نه اوساتې تر څو چې څه ژوندې يم[1] حضور ﷺ اوفرمائيل د بنيادمو زړونه د الله تعالی سره د يو زړه په تعريف کښې دی چه هغه څنګه اوغواړی نو وئی ګرځوی. بيائی اوفرمائيل (اللهم مصرف القلوب صرف قلوبنا الى طاعتك) يعني اې د زړونو ګرځونکيه زمونږ زړونه د خپل اطاعت طرف ته راوګرځوه.[2]

| وَاتَّقُوا فِتْنَةً | لَا تُصِيبَنَّ | الَّذِينَ | ظَلَمُوا | مِنْكُمْ | خَاصَّةً |
|---|---|---|---|---|---|
| اوځان اوساتئ د هغه فتنې نه | چې نه رسيږی | هغه کسانو ته | چې ظلم ئې کړې وی | ستاسونه | خاص |
| او د هغې عذاب نه ځان بچ کړئ چې د هغې اثر به صرف ظالمانو ته نهٔ رسی (بلکه نيکان به په کښې هم راګيريږی) | | | | | |

| وَاعْلَمُوا | أَنَّ اللَّهَ | شَدِيدُ الْعِقَابِ |
|---|---|---|
| او پوهه شئ | چې بيشکه الله | سخت عذاب ورکونکې دې |
| او پوهه شئ چې الله ﷻ عذاب ورکولو کښې ډير سخت دې | | |

**قوله تعالی: وَاتَّقُوا فِتْنَةً**

**دخاصو په وجه عاموخلقوته عذاب-مؤمنان دازميښت نه ويرولې شی چه د الله ﷻ** ازميښت به ګناهګارانو او نيکوکارانو ټولو سره متعلق وی. صرف ګناهګاران دې سره خاص نه دی. حضرت زبير ﷺ ته اوئيلې شوچه اې ابوعبدالله په تاځه اوشو. اميرالمؤمنين حضرت عثمان ﷺ قتل کړې شو تا حضرت عثمان ﷺ وبيللو. بيادهغه د وينې دعويدار جوړشوې چه دعويدار جوړيدلې نو تا نه هغه ولې قتل کړې شو. نوزبير ﷺ اووئيل دا د الله تعالی ازميښت وو په کوم کښې چه مونږ خلق اخته شو. مونږ به د حضرت محمد ﷺ، حضرت ابوبکر ﷺ، اوحضرت عثمان ﷺ په زمانه کښې په قرآن کريم کښې لوستلې وو (وَاتَّقُوا فِتْنَةً لَا تُصِيبَنَّ الَّذِينَ ظَلَمُوا مِنْكُمْ خَاصَّةً) يعني تاسو هم په داسې ازميښت کښې اخته شوئ کوم چه صرف ظالمانوسره مخصوص نه دې بلکه د ټولو به امتحان کيږی. خوزمونږ ګمان هم نه وو چه مونږ به هم دې سره مخ کيږو تردې چه هغه ازميښت په مونږ باندې راغلو[3] اود مسلمانانو دوه ډلې په خپل مينځ کښې اوجنګيدلې اود حضرت عثمان ﷺ د قتل نه د دې فتنې شروع اوشوه.

د حضرت حسن بصری رحمه الله نه روايت دې چه دا آيت د ، علی، عمار، طلحه او زبير رضی الله عنهم باره کښې نازل شوې دې. د زبير ﷺ بيان دې چه مونږ به هميشه دا آيت لوستلو خو څه خبرووچه ددې مصداق به هم مونږ يو. ۵ سدی رحمه الله خيال دې چه دا خاص کر د اهل بدر په حق کښې نازل شوې دې. په جنګ جمل کښې هم هغه د دې مصداق جوړشو او په خپل مينځ کښې اوجنګيدل. د ابن عباس ﷺ خيال دې چه دې نه صرف د نبی کريم ﷺ اصحاب مراد دی. او په يو روايت کښې د دې ايت په تفسيرکښې فرمائی چه مؤمنانوته حکم دې چه بدی خپل ځان کښې پرينږدی. چرته چه څوک په امرمنکرکښې اووينې نو زرنې منع کړنی ګنی نو عذاب به په ټولو باندې وی. هم دغه تفسير ښه تفسير دې.

---

[1] احمد:۳۰۲/۶، ترمذی کتاب الدعوات باب دعاء(يامقلب القلوب...):۳۵۲۲، بدون (اللهم رب النبي ﷺ... ما احييتني) وسنده حسن.

[2] صحيح مسلم کتاب القدر باب تصريف الله تعالی القلوب کيف شاء:۲۶۵٤، احمد:۱٦۸/۲، ابن حبان:۹۰۲، الشريعة للآجری:۷٤۱.

[3] احمد:۱٦۵/۱ وسنده حسن، مسندالبزاز:۹۷٦، السنن الکبری للنسائی:۱۱۲۰٦.



**د ایت مونږ ته هم متوجه دي:**:مجاهد رحمه الله وائی چه دا حکم ستاسو د پاره هم دي. ابن مسعود رضی الله عنه وائی چه په تاسو کښې به هرسړې په دې ازمینښت کښې اخته کیږي. ځکه چه الله تعالی فرمانی ﴿أَنَّمَآ أَمْوَٰلُكُمْ وَأَوْلَٰدُكُمْ فِتْنَةٌ﴾ تاسو کښې هرسړی ته د فتنود ګمراهونه د الله تعالی پناه غوښتل پکاردي. ځکه چه دا تحذیرصحابو او غیرصحابو ټولوباندې شامل دې. دا خبره صحیح ده چه دا خطاب صحابه کراموته دي. داحدیث فتنواو ازمینښتونو نه په ویرولو باندې دلالت کوی. په دې موضوع باندې به ان شاء الله یو مستقل کتاب کښې صراحت کولې شی چه دا کار آئمه حضراتو هم د یو مستقل کتاب په صورت کښې پوره کړې دې. دلته چه د کوم څیز په خاص توګه ذکر دې هغه دا چه رسول الله ﷺ فرمائیلی الله تعالی عزوجل د خواصو د عمل په سبب په عوامو باندې عذاب نه رالیګی. خوچه کله خاص خلق امر منکر په قوم کښې خوریدونکې وینی اود هغې په بندولو باندې قادر وی خوځپل اقتدار په کار راوستلوسره دا نه منع کوی نو بیا عام عذاب راځی او په دې کښې هر خاص او عام راګیرولې شی. (۱) رسول الله ﷺ اوفرمائیل په الله تعالی قسم ترکومې چه تاسو امر بالمعروف او نهی عن المنکر کوئې عذاب به نه راځي. او چه کوم ځائ کښې تاسو د بدو خبرو نه منع کول پریخودل اود نیک کار د ترغیب نه منع شوئې نو الله تعالی به تاسو باندې سخت ترین عذاب رالیږلې شی. بیا که تاسو ډیرې دعاګانې اوکړئی نه به قبلیږی(۲)یاداچه الله تعالی به په تاسو دویم قوم مسلّط کړی بیا به ستاسو ټولې دعاګانې بې کاره شی. ابوالزناد رضی الله عنه وائی چه ما یو غلام حذیفه رضی الله عنه ته ا ولیږلو نو هغه دغه وخت دا ونیل که د نبی ﷺ په زمانه کښې به یو کس هم داسې خبره کوله نو هغه به ئې منافق ګڼړلو خو نن زه په یو مجلس کښې تاسوکښې د یو سړی نه داسې څلور منافقانه کلمې اورم. تاسو له پکار دی چه د نیکو کارونو حکم ورکړئی. د بدو کارونو نه زرمنع کول اوکړئی، خلق خیر ته رابلئی ګنی تاسو ټول به په عذاب کښې راګیرکړې شئی. یا به عذاب د داسې قسم وی چه ستاسو حاکمان به بدان خلق جوړکړې شی نوکه بیا ښه خلق هم ډیرې دعاګانې اوکړی هیڅ به نه کیږی.

**دالله ﷻ دحدودوماتولو مثال:**:نعمان ابن بشیر رضی الله عنه بیان کولو اوبه خپلو دواړو ګوتوباندې خپلو غوږونو طرف ته اشاره کوله چې ما درسول کریم ﷺ نه آوریدلی دی چه فرما ئیل یې چه د الله تعالی په حدودو باندې قائم اوسیدونکی اود الله تعالی حدود ماتونکی یا په دې کښې سستی او غفلت کونکو مثال داسې اوګڼړئی لکه چه یوځو کسان په کشتئی کښې سواره دی د کشتئی پورتنی خلق د کشتئی د لاندینوخلقو د پاره د تکلیف سبب جوړ شو اولاندینوخلقو پورتنوخلقوته تکلیف اورسولو یعنی د لاندې خلقو ته د اوبو ضرورت شو نو پاس لاړل چه اوبه راوړی خو پورتنوخلقو ته تکلیف پیدا شو نو وئې ونیل که چرې مونږ د کشتئی د لاندې نه یوه تخته اخواکړو او په آسانئی سره د اوبو لار جوړه کړو نو پورته خلقو ته به تکلیف نه وی. مطلب داچه ددې به څه نتیجه وی. په کشتئی کښې سورې کولونه هغوی منع کړئی(۳) دغه شان که چرې دا ګناهګاران تاسو پریږدئی اود ګناه د کار نه ئې نه منع کوئې نود کشتئی والا د خلقو په شان به تاسو ټول په ټول هلاك شئی سره د دې چه د کشتئی د پورتنوخلقو غوندې به ستاسو څه نقصان نه وی په دې چه دا سزا ده د دې خبرې چه ولې مو منع نه کړل.

**د ګناه په عام کیدلو سره عذاب هم عام کیږی:**:د ام المؤمنین حضرت ام سلمه رضی الله عنها نه روایت دې رسول الله ﷺ فرمائیل چه کله ګناه زما په امت کښې عامه شی نو الله تعالی به عذاب عام کړی. نو ما

---

(۱) مسنداحمد:۴/۱۹۲.
(۲) ترمذی کتاب الفتن باب ماجاء فی الامر بالمعروف والنهی عن المنکر:۲۱۶۹، ۵/۲۸۸-۲۸۹وهو حسن.
(۳) صحیح بخاری کتاب الشهادات، باب القرعه فی المشکلات:۲۲۸۶، ترمذی:۲۱۷۳، احمد:۴/۲۶۸، ابن حبان:۲۹۷.

عرض اوکړو یارسول الله ﷺ په هغې کښې خو به نیکان خلق هم وی. حضور ﷺ اوفرمائیل چه او هغوی به هم په عذاب کښې راګیروی خو په مرګ به د الله تعالی مغفرت هغوی ته حاصل وی.(۱)

| |
|---|
| وَاذْكُرُوٓا اِذْ |
| یادکړئ هغه وخت \| کله چې |
| ................او هغه وخت یادکړئ چې |
| اَنْتُمْ قَلِيْلٌ مُّسْتَضْعَفُوْنَ فِي الْاَرْضِ تَخَافُوْنَ اَنْ يَّتَخَطَّفَكُمُ |
| تاسو وئ لږ \| کمزوری ګڼړلي شوی وئ \| په زمکه کښې \| تاسو ویریدئ \| چې اوبه \| تښتوی تاسو |
| تاسو لږ وئ او په ملک (مکه) کښې کمزوری ګڼړلي شوئ \| اوتاسو په دې ویره کښې پراته وئ |
| النَّاسُ فَاٰوٰىكُمْ وَاَيَّدَكُمْ بِنَصْرِهٖ |
| خلق \| نوځای د پناه نې درکړو تاسوله \| او مضبوط نې کړل لاسونه ستاسو \| په امداد خپل سره |
| چې خلق به مو اوتښتوی \| نو الله ﷻ درته داستوګنې ځای درکړو \| او په خپل مدد سره نې ستاسو لاسونه مضبوط کړل |
| وَرَزَقَكُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ﴿۲۶﴾ |
| اورزق نې درکړو تاسوله \| د پاکو څیزونو نه \| د پاره ددې چې تاسو \| شکر اوباسئ \| |
| اوتاسو ته نې پاکیزه څیزونه درکړل \|..........نو پکار دی چې تاسو شکر اوباسئ \| |

**قوله تعالی:: وَاذْكُرُوٓا اِذْ اَنْتُمْ قَلِيْلٌ**

**الله ﷻ پخپل فضل مسلمانان آسودګئی راحت او آرام سره مخ کړل:-** الله تعالی هغه نعمتونه بیانوی کوم چه نې په مؤمنانو باندې اوکړل، چه هغوی په شمیر کښې کم وو مونږ زیات کړل هغوی کمزورې او ویریدونکی وو. مونږ قوی کړل او د ویرې اسباب موترې لرې کړل. غریبانان او فقیران وو هغوی ته مو پاك رزق ورکړو. هغوی مو شکر اداکونکی اواطاعت کونکی جوړ کړل او په هره خبره کښې حکم منونکی شو. دا وو د مؤمنانو حال چه په مکه کښې وو او په شمیر کښې ډیر کم وو، هر وخت هغوی ته ویره وه چه هغوی به اوچت کړې شی. هم دغه حال د یو مودې پورې وو بیا الله تعالی هغوی ته د مکې نه مدینې ته د هجرت کولو حکم اوکړو، هلته هغوی ته پناه ملاو شوه. د مدینې خلقو دهغوی امداد اوکړو. د بدر په ورځ او په نورو جنګونو کښې د هغوی ملګرتیا اوکړه. ځان او مال نې په هغوی باندې قربان کړل. ځکه چه هغوی دالله ﷻ اود هغه درسول الله ﷺ تابعداری کول غوښتل. ﴿وَاذْكُرُوٓا اِذْ اَنْتُمْ قَلِيْلٌ مُّسْتَضْعَفُوْنَ فِي الْاَرْضِ﴾ قتاده رحمه الله وائی چه په عربو کښې داخلق ډیر په خراب حال کښې وو د هغوی ژوند ډیر تباه وو. په خېټه وږی اور نهر، په بدن بربنډ، د لارې نه بې لارې څوك هم چه وو بدنصیب وو، چه مړ به شو جهنم به دیکه شو. هغوی ته خو به د خوراك د پاره څه نه ملاویدله بلکه نورو به دوئ خوړل. مونږ ته خونه ده معلومه چه په دنیا کښې به د دوی نه زیات څوك په ذلیل حالت کښې وو. خود اسلام راوړلونه پس څه اوشو هم دغه ذلیل خلق په ملکونو قابض شو. امیران اوبادشاهان جوړ شو. رزق ورته په ډیرو ملاو شو، په بادشاهانو باندې ئې هم حکم اوچلولو. الله تعالی هغوی ته هغه هرڅه ورکړل کوم چه تاسو نن وینئ. اوس دالله تعالی د نعمتونو شکر اوکړئ هغه منعم حقیقی دې. شکر کونکی بندګان خوښوی اودولت او نعمت نور هم زیاتوی.

(۱) احمد:۶/۳۰٤، ۲۹٤-۲۹۵.

| |
|---|
| يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ |
| انې هغه كسانو |
| ......انې ايمان دارو ! |
| اٰمَنُوْا لَا تَخُوْنُوا اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ وَتَخُوْنُوْٓا اَمٰنٰتِكُمْ |
| چې ايمان موراوړى دې \| مۀ كوئ خيانت \| دالله سره \| اودرسول سره \| اوخيانت مۀ كوئ \| په امانتونوخپلو كښې |
| دالله ﷻ اودرسول سره خيانت مۀ كوئ \| اوديوبل امانتونو كښې هم خيانت مۀ كوئ؛ |
| وَاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ۝ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّمَآ اَمْوَالُكُمْ وَاَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ |
| اوتاسو \| پوهيږئ \| اوپوهه شئ \| چې بيشكه \| مالونه ستاسو \| اواولاد ستاسو \| ازميښت دي |
| حالانكه تاسو پوهيږئ \| او پوهه شئ چې ستاسومالونه او ستاسو اولاد خو په حقيقت كښې امتحان دي |
| وَّاَنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗٓ اَجْرٌ عَظِيْمٌ ۝ |
| اوبيشكه الله چې دې \| دهغه سره \| اجردې \| لوئ \| |
| اوالله ﷻ سره چې كوم اجر دې هغه ډيرلوئ دې \| |

**قوله تعالى: لَا تَخُوْنُوا اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ**

**دَ الله ﷻ اوْ رسول دَ خيانت مفهوم:-** دا آيت د ابولبابه بن عبدالمنذر رضي الله عنه باره كښې نازل شوې كله چه حضورﷺ هغه دبنوقريظه يهوديانو طرف ته اوليكلو چه درسول اللهﷺ شرط اومنئ اوقلعه خالى كړئ. يهوديانو هم د ابولبابه رضي الله عنه نه مشوره اوغوښته نو هغه هم د هغوى د مرضئ مشوره وركړه. د هغې نه پس هغه ته احساس اوشو چه هغه خو دهوكه شو چه داخود الله تعالى اود هغه د رسول ﷺ خيانت اوشو. نو قسم ئې اوخوړلو چه تركومې الله تعالى د هغه توبه قبوله كړې نه وى ترهغه وخته پورې به مړشم خوخوراك به اونه كړم. اوس د مدينې جمات ته راغلو او ستنې سره ئې خپل ځان اوتړلو. نهه ورځې په دې حال كښې تيرې شوې د ولږې او تندې نه بې هوشه شو راپريوتلو تردې چه د رسول الله ﷺ په ژبه مباركه ئې الله تعالى توبه قبوله كړه. خلق زيرې وركولوسره راغله او غوښتلې چه د ستنې نه ئې كولاؤكړى.ابولبابه رضي الله عنه ونيل چه ما صرف رسول اللهﷺ پرانستې شي. رسول اللهﷺ كولاؤ كړو نوونئ ونيل يارسوُل اللهﷺ! ماخپل ټول مال صدقه كړه. رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه نه صرف دريمه حصه به صدقه كيږى[1] مغيره بن شعبه رضي الله عنه وائى چه په لحاظ د مضمون دا آيت د حضرت عثمان رضي الله عنه د قتل پيش كوئې سره متعلق دې خكه چه فتنه اوفساد پيداكولوسره امير قتلول د الله تعالى او رسولﷺ خيانت دې.

**نبى كريم ﷺ ته د سفيان د قافلې اطلاع اودحاطب قصه::**حضرت جابربن عبدالله رضي الله عنه وائى چه ابوسفيان د مكې نه اووتلو، جبرائيل عليه السلام راغلو رسول الله ﷺ ته ئې خبر وركړو چه ابوسفيان په فلانى مقام كښې دې نوحضورﷺ صحابه كرامو ته اوفرمائيل چه ابوسفيان په فلانى مقام باندې دې د هغه د رانيولو د پاره اوځئ اودا معامله دې بالكل په رازكښې وى. خو يو منافق ابوسفيان ته اوليكل چه محمدﷺ تاسو رانيسى هوښيار اوسيږه. نو دا آيت نازل شو چه د الله تعالى او د هغه د رسول ﷺ سره خيانت مه كوئ. د رسول اللهﷺ راز ښكاره كول د رسول اللهﷺ سره خيانت دې. دا حديث غريب دې اود آيت سياق

[1] الطبرى:۴۸۲/۱۳، مسنداحمد:۴۵۲/۳ مختصراً.

نه هم ددې ثبوت نه ملاویږي. په مسلم او بخاري شریف کښې د حاطب ابن ابی بلتعه قصه داسې لیکلې ده چه هغه د قریشو کافرانوته د رسول الله ﷺ د قصد نه د خبرولو د پاره خط اولیکلو. دا د مکې د فتح د وخت خبره ده نو الله تعالی رسول الله ﷺ خبرکړو. پیغمبرﷺ هغه پسې سړې اوزغلولو نو هغه خط نې اونیولو. حاطب ﷺ نې راوغوښتو. حاطب ﷺ د خپل قصور اعتراف اوکړو. حضرت عمر بن خطاب ﷺ اووئیل یارسول الله ﷺ! د ده سټ والوزوم ده الله تعالی اود هغه رسول الله ﷺ سره خیانت کړې دې. نوحضورﷺ اوفرمائیل عمرﷺ! پریږده دې د بدر په جهاد کښې شامل وو ولې تاته خبر نشته چه د بدر د مجاهدینو باره کښې الله تعالی فرمائیلي دی ما تاسواوبښلني اوستاسو ټول ګناهونه معاف دی.[1] مطلب دا چه صحیح هم دغه خبره ده چه په آیت کښې عمومیت دې سره د دې چه دا صحیح دی چه د آیت شان نزول په یوخاص سبب دې اود علماؤ په نیز د عموم لفظ اعتبار کیدې شي. نه د خصوصي سبب او په لویو وړوکښې متعدی او لازمی ټول ګناهونه شامل دی. ابن عباس ﷺ وائی چه دلته د لفظ امانت نه هغه ټول اعمال مراد دی کوم چه الله تعالی په بندیګانویاندې فرض کړی دی. مراد دادې چه فریضه مه ماتوئی سنت مه پریږدئی د ګناه د کولونه بچ شئ. حضرت عروه بن زبیرﷺ وائی چه مطلب دا دې چه داسې مه کوئې چه په مخامخ خود چا دمرضئی خبره اوکړئی اود هغه په غیرموجودګئی کښې د هغه غیبت یا مخالفت اوکړئی. اصلی خیانت هم دغه دې. امانت هم په دې سره ختمیږي. سدی ﷺ وائی چه د الله تعالی او رسول اللهﷺ سره خیانت هم دغه دې چه سړې په خپل مینځ کښې خیانت اوکړي. خلقو به د حضورﷺ نه خبرې اوریدې او نوروته به ئې کولې نود دې خبر به مشرکانوته رسیدلو. په دې وجه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه د دوو سړو په مینځ کښې خبره په هر صورت امانت وی. خبره چه ئې کوم خائ کښې اوریدلې وی هم هلته پریخودل پکار دی. د چا په وړاندې دچا خبره سردوباره کول نه دی پکار.سره د دې که هغه نه وی منع کړې. ﴿وَاعْلَمُوٓا۟ أَنَّمَآ أَمْوَٰلُكُمْ وَأَوْلَٰدُكُمْ فِتْنَةٌ﴾[2] دفتنې نه ازمیښت او امتحان مراد دې. چه اولاد ورکوو اوازمیښت کوو یئې چه تاسو شکرکوئې که نه اود اولاد ذمه وارئې په خائې راوړئی که نه.یا داچه دهغوی په محبت کښې د الله تعالی نه غافله کیږئی که په دې امتحان کښې پوره شوئې نو الله تعالی سره عظیم بدله ده. اوفرمائی چه د خیر او شر په ذریعه مونږ به تاسو ازمیښت کوو. اوفرمائی چه اې مؤمنانو! ستاسو اولاد او ستاسو مال دې تاسو د الله تعالی د یادنه غافل نه کړی که چرې داسې اوشو نو تاسو به په سخت تاوان کښې شئ. اوفرمائی چه ستاسو ښبیانې او اولاد ستاسو دښمنان دی په دې وجه احتیاط کوئې. د الله تعالی سره ثواب اود هغه جنتونه د دې مال او اولاد نه ډیر بهتر دی. دا د دښمن په شان نقصان رسونکی دی او په دوی کښې اکثرستاسود پاره فائده مند نه جوړیږي.الله تعالی د دنیا اوآخرت مالك دې او په قیامت کښې هغه سره اجر عظیم دې. په حدیث کښې دی چه اې بنیادمه! ته ما لټوه زه به ملاؤ شم که زه تاته ملاؤشوم نو پوهه شه چه هرڅه ملاؤشو. اوکه تا زه ورك کړم نو هرڅه دې ورك کړل. پکار دی چه زه تاته د هر څیز نه ډیر محبوب شم.

نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه درې څیزونه چې په چا کښې چې درې واړه راغلل نو هغه د ایمان لذت محسوس کړو.(۱) د الله تعالی اود هغه د رسول ﷺ د هر څیز نه ډیر محبوب کیدل. (۲) چا سره هم چه مینه وی نو صرف دالله تعالی په خاطر (للهیت)په توګه او ذاتی غرض په کښې شامل نه وی(۳) په اور کښې ورټوپبل بهتر ګنړل د دې خبرې چه د اسلام نه پس مرتد شي. ([2]) بلکه د رسول الله ﷺ محبت په

---

[1] صحیح بخاری کتاب الجهاد باب الجاسوس والتجسس والتبحث:۳۰۰۷، صحیح مسلم: ۲۴۹۴، ابوداؤد: ۲۶۵۰، ترملی:۳۳۰۲، احمد: ۷۹/۱، مسندابی یعلی:۳۹٤.

[2] صحیح بخاری کتاب الایمان باب من یکره ان یعود فی الکفر...:۲۱، صحیح مسلم:٤۳، ابن ماجه:٤۰۳۳، احمد:۱۷۲/۳، ابن حبان:۲۳۷.

مال او اولادباندې هم مقدم اوګڼرې. لکه چه په حدیث شریف کښې دي په الله تعالی قسم ایمان ورته هډو نصیب نه دی که د خپل ځان مال او اولاد نه ما ډیر خوښ نه کړي.([1])

| يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا |
|---|
| اې هغه کسانو \| اچې ایمان مو راوړې دې |
| اې دایمان خاوندانو ! ............... \| |

| إِن تَتَّقُوا اللَّهَ يَجْعَل لَّكُمْ فُرْقَانًا وَيُكَفِّرْ |
|---|
| که اوویریدئ تاسو \| دالله نه \| دربه کړي \| تاسوله \| علم دکره کوټه معلومولو \| اولرې به کړي |
| که تاسو دالله ﷻ نه اوویریدئ \| نو تاسو ته به دحق اوباطل معلومولو یوبصیرت درکړي \| او تاسوته به |

| عَنكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ۗ وَاللَّهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ |
|---|
| ستاسو نه \| ګناهونه ستاسو \| اومعافي به اوکړي \| تاسو ته \| اوالله \| خاوند دفضل لوئ دې |
| ګناهونه معاف کړي \| او تاسو ته به ښښنه اوکړي \| اوبیشکه الله ﷻ د ډیر لوئ فضل خاوند دې |

قوله تعالی:: إِن تَتَّقُوا اللَّهَ

دَ الله تعالی نه ویریدل ښه دې:- اې مؤمنانو! که چرې تاسود الله تعالی نه اوویریږئ نوالله تعالی به تاسو ته په دنیا او آخرت کښې خلاصي درکړي. د فرقان نه مراد خلاصي یاامداد یا د حق او باطل په مینځ کښې فیصله مراد ده.دانفسیرد ابن اسحاق دتفسیر تفسیرماسبق نه زیات عام دې.ددې د پاره چه څوك دالله تعالی نه ویریږي د هغه احکام به په ځائ راوړي د هغه دمناهي نه به ډډه کوي نود حق اوباطل د معرفت به هغه ته توفیق کیږي. دا به د هغه د نجات او امداد سبب وي.دهغه د ګناهونو کفاره به وي، الله تعالی به غفاراوستار جوړشي،دالله تعالی نه به دډیرې لوئې بدلې حقدارجوړشي. لکه چه فرمائي اې مؤمنانو! دالله تعالی نه اوویریږئ او د رسول ﷺ تابعداری اوکړئ الله تعالی به په تاسو باندې ډبل رحمت نازل کړي. هغه به تاسو ته یو نور درکړي چه د هغې په رهنمائي کښې به روان ئې هغه به تاسو اوبښی هغه ډیر ښښونکې او مهربان دې.([2])

| وَإِذْ يَمْكُرُ بِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا |
|---|
| \|او(یاد کړه)کله چې تدبیر کولو\| خلاف ستا \| هغه کسانو \| چې دحق نه ئې انکارکړې دې |
| اوهغه وخت یاد کړه چې کافرو ستاخلاف دا سازشونه کول |

| لِيُثْبِتُوكَ أَوْ يَقْتُلُوكَ أَوْ يُخْرِجُوكَ ۚ وَيَمْكُرُونَ وَيَمْكُرُ |
|---|
| چې قید کړي تا \| یاقتل کړي تا \| یا اوباسي تا \|اوهغوئ تدبیرونه کول خپل\|اوتدبیرونه کول |
| چې تاقید کړي \| یا تا مړ کړي \| یا دې دوطن نه اوباسي \| هغوئ خپل تدبیرونه کول \| اوالله ﷻ |

[1]) صحیح بخاری کتاب الایمان باب حب الرسول ﷺ من الایمان:۱۵، صحیح مسلم:۴۴.
[2]) ۵۷/الحدید:۲۸.

| | | |
|---|---|---|
| اللّٰهُ ط | وَاللّٰهُ | خَيْرُ الْمٰكِرِيْنَ ۝ |
| الله | او الله | بهتره تدبير كونكې دې |

خپل تدبيرونه كول او الله بهتر تدبير كونكې دې

**قوله تعالى:: وَاِذْ يَمْكُرُ بِكَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا**

**دَ كفارو په مجلس شورى كښې دَ رسول ﷺ دقتل ناپاكه سازش:-** اوس كافران دا چل ول كول غواړي چه تا قيد كړي يا دې قتل كړي يا دې د وطن نه اوباسي. د اثبات معنى قيد او حبس دې. مطلب دا چه دغوى تاسره څه خرابه اراده لري. كافرانوچه كله دا مشوره اوكړه چه نبى كريم ﷺ قيد يا قتل كړني يا ئې د وطن نه اوباسئى نو ابوطالب د وراره نه تپوس اوكړو آيا تاته څه خبر شته چه دا كافران تاسره څه اراده لري. نو حضور ﷺ اوفرمائيل چه قيد ياقتل يا د وطن نه ويستل. نو ابوطالب تپوس اوكړو تاته چاخبردركړو نو حضور ﷺ اوفرمائيل زما رب ماته خبر راكړو. ابوطالب اووئيل ستا رب خو ښه ډير رب دې هميشه د هغه خير غواړه. رسول الله ﷺ اوفرمائيل زه به د هغه څه خير اوغواړم بلكه هغه زما خير غواړي.ربښتيا خودا دى چه د ابوطالب ذكر په دې كښې ډير عجيبه دې بلكه د انكار قابل ځكه چه دا آيت مدنى دې اودا واقعه اود قريشو مشوره كول د هجرت په شپه وو اود ابوطالب مرګ هم د دې نه درې كاله وړاندې شوې وو. هم د ابوطالب د مرګ په سبب دې كافرانو خو دومره بهادرى او همت كړې وو ځكه چه ابوطالب خو به هميشه د حضور ﷺ حمايت او امداد كولو اود وراره په حفاظت كښې به ئې د قريشو مقابله كوله.

**دارالندوه كښې دمشركانو مشوره او دشيطان رائې::** د ابن عباس ﷺ نه روايت دې چه د قريشو سردارانو يو مجلس كښې شورى اوكړه اود حضور ﷺ په نقصان رسولو باندې وو. په دې مجلس كښې ابليس هم ديو لونى شيخ په شكل كښې راغلو.خلقو تپوس اوكړو ته څوك ئې؟ هغه جواب وركړو زه د اهل نجد شيخ يم. ما اوريدلى دى چه تاسو خلق مجلس كښې شورى كوئې نوزه هم راغلم دې د پاره چه تاسو زما د مشورې نه محروم پاتې نه شئى. خلقو ونيل چه راځه خامخا راځه. هغه ونيل چه تاسو خلق د دې سړى باره كښې ښه فكر او سوچ اوكړئى ګنى نو ډير ممكن دى چه هغه په تاسوباندې غالب شى. نو يو رائې وركړه چه هغه قيدل كول پكار دى او تړدې چه هغه په قيد كښې هلاك شى. لكه څنګه چه زهير او نابالغ شاعران د دې نه اول قيدكړى وو او هغوى هلته تر مرګ پورې پراته وو اودا خو هم يو شاعر دې. په دې باندې هغه شيخ نجدى غصه شو چه زماخو هيڅ كله دا رائې نه ده. په الله تعالى قسم د هغه رب به هغه د هغه ځائې نه راوباسى اوخپلو ملګرو ته به اورسى او بيا به هغه حمله اوكړى او هرڅه به درنه واخلى اوستاسودښارونونه به تاسو بهر اوباسى.خلقو ونيل شيخ ربښتيااووئيل څه بل څه تجويز اوكړنى. بل اوونيل چه دې د خپل ملك نه اوباسنى او په آرام شنى. كله چه هغه دلته نه وى نوستاسو به د هغه نه څه انديښنه نه وى.دهغه تعلق به ستاسو نه علاوه بل چا سره وى نوستاسو پرې څه. دې اوريدو سره شيخ نجدى اوونيل په الله تعالى باندې قسم دا رائې هم صحيح نه ده. آيا تاسو ته د هغه د خوږې ژبې خبرنه دې او په خپلو خبروباندې د هر چا زړه ګټلې شى. كه چرې تاسو داسې اوكړه نو هغه به ټول عرب رايوځائې كړى. د هغه ټول حمايتيان به په يوځائې په تاسوحمله اوكړى اوتاسو به د خپل وطن نه اوباسى ستاسو شريف خلق به قتل كړې شى خلقو ونيل شيخ ربښتيا وائى څه بله رائې پيش كړنى. ابوجهل ونيل زه يوه مشوره دركوم. كه تاسو سوچ اوكړنى نو د دې نه ښه رائې نه شى كيدې. د هرې قبيلې نه يو يو خوان راغونډ كړنى چه بهادر او شريف وى هريو سره دې توره وى ټول دې يوځائې شى او په هغه دې يوځل يو وار اوكړى كله چه هغه قتل كړې شى نود هغه وينه به په قبيلو باندې تقسيم شى. دا خو

ممکن نه دی چه د بني هاشم يوه قبيله به د ټولو قبيلوسره جنګ اوکړي او مجبورا به بني هاشم د هغه دقتل ديت قبول کړي. ديت به ورکړو او مونږ ته به آرام ملاوشي. شيخ نجدي وئيل والله دا رائي صحيح ده. دې نه بله ښه رائې نشته. په دې باندې اتفاق کولو نه پس مجلس ختم شو. اوس جبرائيل ﷺ راغلو او حضور ﷺ ني خبرکړو چه نن شپه په بستره باندې مه سمله اود کافرانو د سازش خبر ني ورکړو. نبي کريم ﷺ په هغه شپه په بستره باندې اوده نه شو او هم هغه وخت ني د هجرت حکم ورکړو. مدينې ته په راتلوباندې الله تعالى په هغوی ﷺ باندې سورۀ انفال نازل کړود خپلونعمتونوذکرني اوفرمائيلو او فرماني ﴿وَيَمْكُرُونَ وَيَمْكُرُ اللَّهُ ۖ وَاللَّهُ خَيْرُ الْمَاكِرِينَ﴾ هغوی چال چلوی نو الله تعالى هم چال چلوی الله تعالى ډير ښه مدبردې. ددوی قول دې ﴿نَتَرَبَّصُ بِهِ رَيْبَ الْمَنُونِ حَتَّىٰ يَهْلِكَ﴾ هم دې طرف ته اشاره کولوسره ارشاد فرماني ﴿أَمْ يَقُولُونَ شَاعِرٌ نَتَرَبَّصُ بِهِ رَيْبَ الْمَنُونِ﴾

ترجمه:- آيادا خلق داسې وائي چه داشاعر دې مونږ دهغه باره کښې د ناڅاپې مرګ انتظارکوو اود هغه ورځ نوم "يوم الزحمة" شو. څکه چه په هغه ورځ د حضور ﷺ د قتل سازش جوړ شوې وو د هغوی د دې ارادو ذکر په آيت ﴿وَإِن كَادُوا لَيَسْتَفِزُّونَكَ مِنَ الْأَرْضِ لِيُخْرِجُوكَ مِنْهَا ۖ وَإِذًا لَّا يَلْبَثُونَ خِلَافَكَ إِلَّا قَلِيلًا﴾ کښې دې. نبي کريم ﷺ الله تعالى دحکم په انتظار وواوچه کله قريشود قتل اراده اوکړه نوحضرت علي ﷺ ني راوغوښتو اوحکم ني ورکړو چه زماپه بستره باندې سمله. حضرت علي ﷺ شين څادر واغوستو او سملاستو. رسول الله ﷺ بهرراووتلو. خلق په دروازه کښې ښکاريدل. حضور ﷺ يوموټې خاوره دهغوی طرف ته اوشيندله دهغوی سترګې دحضور ﷺ نه واوړيدې. حضور ﷺ ﴿يس ۝ وَالْقُرْآنِ الْحَكِيمِ ۝ إِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ ۝ عَلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ۝ تَنزِيلَ الْعَزِيزِ الرَّحِيمِ ۝ لِتُنذِرَ قَوْمًا مَّا أُنذِرَ آبَاؤُهُمْ فَهُمْ غَافِلُونَ ۝ لَقَدْ حَقَّ الْقَوْلُ عَلَىٰ أَكْثَرِهِمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ۝ إِنَّا جَعَلْنَا فِي أَعْنَاقِهِمْ أَغْلَالًا فَهِيَ إِلَى الْأَذْقَانِ فَهُم مُّقْمَحُونَ ۝ وَجَعَلْنَا مِن بَيْنِ أَيْدِيهِمْ سَدًّا وَمِنْ خَلْفِهِمْ سَدًّا فَأَغْشَيْنَاهُمْ فَهُمْ لَا يُبْصِرُونَ﴾ لوستلوسره اووتلو.[1]

**د کورنه د وتلو په وخت د کافرانو په سرونو خاورې شنل:** د ابن عباس ﷺ نه روايت دې چه فاطمه ﷺ په ژړا کښې رسول الله ﷺ له راغله، حضور ﷺ اوفرمائيل ولې ژاړې، حضرت فاطمه ﷺ وئيل ولې به نه ژاړم چه دې د قريشوخلقو دلات او عزي قسمونه خوړلي او وعدې ني کړې دې چه ستاسو په ليدو باندې به په تاسو حمله کوي او تاسو به قتل کوي او په هغوی کښې به هر يو کس ستاسو په قتل کښې حصه اخلي. حضور ﷺ اوفرمائيل لوړې د اودس د پاره اوبه راوړه. حضور ﷺ اودس اوکړو اود کعبې طرف ته روان شو. قريشو وئيل دا هم هغه دې خو دې سره د هغوی سرونه ټيټ شو او ستونه ني کاږه شو هغوی خپلې سترګې اوچتې نه کړې شوې. حضور ﷺ يو موټې خاوره اوچته کړه اود هغوی طرف ته ني اوغورزوله اووني فرمائيل چه شکلونه دې خراب شي چاسره چه داکاڼړې اولګيده په يوم بدر کښې هغه کافر خامخا قتل شو.[2] مطلب داچه نبي کريم ﷺ هجرت اوکړو او غارته اورسيدو اوحضرت ابوبکر صديق ﷺ ني خان سره بوتلو.

**درسول کريم ﷺ د وتلو په وخت حضرت علي ﷺ په خپل ځائې پاتې کول:** مشرکانود حضور ﷺ د کور څوکيداری کوله، حضرت علي ﷺ ني حضرت محمد ﷺ ګنړلو سحر سره نيزدې ني حمله اوکړه خو په کور کښې حضرت علي ﷺ اوليدو نو ټوله منصوبه ني بې کاره شوه. تپوس ني اوکړو محمد ﷺ چرته دې؟ علي ﷺ وئيل ماته پته نشته. د قدمونو مبارکو په لار روان شو. غرته نيزدې اورسيدل نو په شک کښې شو. په غار ورواوختل دغار مخې ته تيرشو د غار په خُله کښې جولاګې جاله جوړه کړې وه. وئيل که په غارکښې څوك دننه تلې وو نود دې په خُله کښې به دا دومره لويه جاله څنګه قائم پاتې کيده.

---

[1] ) دلائل النبوه: ۲/ ۴۶۹ .
[2] ) احمد: ۱/ ۳۰۳ وسنده حسن، حاکم: ۱/ ۱۶۳، ابن حبان: ۶۵۰۲، دلائل النبوه: ۶/ ۲۴۰.

حضورﷺپه غار کښې درې ورځې وو. (۱) الله تعالی فرمائی هغوی چالونه چلوی نو مونږ هم خپل چال بنایو. ګوره څنګه مو د دې کافرانو نه خلاصې ورکړو.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَإِذَا | تُتْلٰى | عَلَيْهِمْ | اٰيٰتُنَا |
| اوکله چې به | لوستلی کیدل | په هغوئ باندې | آیتونه زمونږه |

اوکله چې په دوئ باندې زمونږ آیتونه اولوستې شی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَالُوْا | قَدْ | سَمِعْنَا | لَوْ نَشَآءُ | لَقُلْنَا | مِثْلَ هٰذَآ |
| وئیل به ئې | په تحقیق سره | اوریدل مونږه | که مونږه اوغواړو | نوخامخا به اووایو مونږه | په مثل ددې |

نودوئ وائې چې مونږ واوریدل ...............اوکه مونږ اوغواړو نو مونږ به داشان جوړ کړو

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنْ هٰذَآ | إِلَّآ | أَسَاطِيْرُ | الْأَوَّلِيْنَ۝ | وَإِذْ | قَالُوا | اللّٰهُمَّ | إِنْ كَانَ |
| نهٔ دی دا | مګر | قیصې دی | د اولنو خلقو | اوکله چې | اووئیل هغوئ | ائې الله | که چرې وی |

داخو نور څهٔ نهٔ دی بلکه تشې د پخوانو خلقو قیصې دی اوهغه وخت هم یادکړه کله چې دوئ اووئیل ائې الله

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| هٰذَا | هُوَ | الْحَقَّ | مِنْ عِنْدِكَ | فَأَمْطِرْ | عَلَيْنَا | حِجَارَةً | مِّنَ السَّمَآءِ |
| دا | هم دا | حق | دطرفه ستانه | نوراواوروه | په مونږ | کانړې | دآسمان نه |

که دا (قرآن) واقعی حق وی او ستا دطرفنه راغلې وی نو په مونږ باندې دبره نه کانړی راووروه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَوِ ائْتِنَا | بِعَذَابٍ | أَلِيْمٍ۝ | وَمَا كَانَ اللّٰهُ | لِيُعَذِّبَهُمْ |
| یا راوله په مونږ باندې | عذاب | دردناك | اونهٔ دې الله | چې عذاب ورکړی دوئ ته |

اویا راباندې یو بل دردناک عذاب راوله او الله ﷻ داسې نهٔ کوی چې دوئ ته عذاب ورکړی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَأَنْتَ | فِيْهِمْ | وَمَا كَانَ اللّٰهُ | مُعَذِّبَهُمْ | وَهُمْ |
| اوحال دا چې تهٔ | موجود ئې په دوئ کښې | اونهٔ دې الله | عذابونکې ددوئ | اوحال دا چې دوئ |

او ته په دوئ کښې موجود یې او نهٔ الله ﷻ داسې خلقو ته عذاب ورکوی چې هغوئ

| |
|---|
| يَسْتَغْفِرُوْنَ۝ |
| بښنه غواړی |

بښنه غواړی

**قوله تعالى: وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَأَنْتَ فِيْهِمْ وَمَا**

دَ نبیﷺوجودمبارک دَکافرانودَ پاره دَ حفظ او ایمان باعث وو.- دقریشو د کفر او ظلم خبر ورکولې شی چه قرآن پاك اوریدو سره هغوی څنګه باطلې دعوې کوی. وائی چه مونږ دا کوم قرآن پاك اوریدلې دې که اوغواړو نو مونږ هم داسې وئیلې شو.داصرف د هغوی دعوی ده او وینا بغیرد عمل ده. په دې باندې بار بار په قرآن پاك کښې تحدی اوکړې شو. چیلنج ورکړې شو چه داسې صرف یو سورة جوړکړنې راوړنې خو هغوی جوړ نه کړې شو. داسې وینا کولو سره هغوی خپلو نفسونوته دهوکه ورکوی. او خپل

(۱) احمد: ۱/۳۴۸، طبرانی: ۱۲۱۵۵.

د دروغو هم خيال ئې هم په دهوكه كېنې ساتلې دى. وائي چه دا وينا كونكي نضر بن حارث وو. دا بې دينه د فارس ښار طرف ته تلې وو، د هغه ځائ ايراني بادشاهانو او رستم اسفنديار تاريخ ئې لوستلې وو او چه كله واپس شو نو د رسول اللهﷺ بعثت شوې وو. حضورﷺ خلقو ته قرآن پاك اورولو او چه كله به هغوى مجلس ختم كړو نو دا كمبخت نصر به كيناستو اود ايراني بادشاهانو تاريخ به ئې بيانولوسره وئيل اوښايئي چا ښه قصه بيان كړه ما كه محمدﷺ؟ او چه كله الله تعالى د بدر په ورځ مسلمانانو ته كاميابى وركړه اوبعضې دمكې مشركان قيد كړې شو نوحضورﷺ دهغوى هم دستونه پريكولو حكم اوكړواودده هم سټ پريكړې شو.مقدادﷺ بن اسودهغه قيد كړې وو.سعيد بن جبيرﷺ وائي چه حضورﷺ د بدر په ورځ د دريو قيديانو د قتل كولو حكم وركړې وو (۱) عقبه بن ابى معيط (۲) طعيمه بن عدى (۳) نضر بن حارث.

**د كفارو غرور او د قران كريم پشان دعوى كول::** نضرد مقدادﷺ قيدى وو. حضورﷺ چه كله د هغه د قتل كولو حكم وركړونومقداد ﷺ عرض اوكړويارسول اللهﷺ! داخو زماقيدى دې ماته ملاويدل پكار دى. نو حضرت ﷺ اوفرمائيل ده د الله تعالى د كتاب بې ادبى كړې ده نو د قتل حكم ئې اوشو. مقدادﷺ د خپل بندى طرف ته د رسول الله ﷺ توجو راوګرځوله نو نبى كريم ﷺ دا دعا اوكړه يا الله ته د خپل فضل نه مقداد ﷺ ته ډير څه وركړه نو مقداد ﷺ اووئيل يا رسول الله ﷺ! د اصرار سره مطالبه كولو زما هم دغه غرض وو چه په تاسوﷺ دعااوكړم. هم ددې نضر باره كېنې دا آيت نازل شو ﴿وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا قَالُوا قَدْ سَمِعْنَا لَوْ نَشَاءُ لَقُلْنَا مِثْلَ هَٰذَا ۙ إِنْ هَٰذَا إِلَّا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ﴾.دسعيد بن جبيرﷺ نه ابو بشر راوى د طعيمه په ځائ د مطعم بن عدى نوم اخستې دې اودا خبره غلطه ده ځكه چه مطعم بن عدى خو د بدر په ورځ ژوندې نه وو. په دې وجه رسول اللهﷺ فرمائيلى وو چه كه نن مطعم بن عدى ژوندې وو او د دې مقتولينونه يى د چا باره كېنې سوال كړې وو نو ما به هغه ته دغه قيدى وركړې وو[1] حضورﷺ دا ځكه اوفرمائيل چه هغه په هغه وخت كېنې حضورﷺ بچ كړې ووكله چه د طائف ظالمان په حضورﷺ پسې شوى وو او مكې ته واپس شوې وو.

"أَسَاطِيرُ" د اسطوره جمع ده يعنى هغه كتابونه او اقتباسات كوم چه ئې زده كړى او خلقو ته ئې اوروى اودا صرف قصې وى لكه چه بل ځائ كېنې الله تعالى داسې فرمائى ﴿وَقَالُوا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ اكْتَتَبَهَا فَهِيَ تُمْلَىٰ عَلَيْهِ بُكْرَةً وَأَصِيلًا ۝ قُلْ أَنزَلَهُ الَّذِي يَعْلَمُ السِّرَّ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۚ إِنَّهُ كَانَ غَفُورًا رَّحِيمًا﴾ كافروائى چه داخود مخكينو خلقو دروغژنې قصې دى كوم چه ليكلې دى او شپه ورځ بيانولې شى. ځوك چه د الله تعالى طرف ته رجوع كوى هغه ده ته معافى كوى اود هغه توبه قبلوى. هغه د زمكې او آسمان رازونه پيژنى اودا قرآن پاك هم د هغه طرف نه دې. كافروائى اې الله تعالىاكه دا قرآن حق دې نو د آسمان نه په مونږ باندې كاڼړى راووروه يادردناك عذاب راوله. دا دعاهغوى د ډيرجهالت ناپوهئى سركشئ او دښمنئى په سبب ده هم په دې بې وقوفئى كېنې هغوى بدنام دى هغوى له خو په پكار وو چه داسې دعا ئې غوښتله چه الله كه دا قرآن ستا د طرف نه وى نو مونږ له د دې د اتباع توفيق راكړې ولې هغوى خو د خپل ځان د پاره عذاب اوغوښتو اود سزا د پاره ئې تيزى كوله. لكه ځنګه چه الله تعالى فرمائى چه دا خلق د عذاب د پاره تندى كوى اوكه د عذاب يوه ورځ مقرر نه وه نو عذاب به دوى ډير زر راګيركړې وې چه دوى ته به خبرهم نه وو. هغوى وائى ﴿وَقَالُوا رَبَّنَا عَجِّل لَّنَا قِطَّنَا قَبْلَ يَوْمِ الْحِسَابِ﴾ او ﴿سَأَلَ سَائِلٌ بِعَذَابٍ وَاقِعٍ ۝ لِّلْكَافِرِينَ لَيْسَ لَهُ دَافِعٌ ۝ مِّنَ اللَّهِ ذِي الْمَعَارِجِ﴾ دتيروشوو امتونو جاهلانو هم داسې وئيلې وو. د شعيبﷺ قوم وائى اې شعيبﷺ!

---

[1] صحيح بخاري كتاب فرض الخمس باب ما من النبي على الاسارى من غير ان يخمس: ۳۱۳۹، ابوداؤد: ۲۶۸۹، احمد:۸۰/۴، مسندابى يعلى: ۷۴۱۶، بيهقى: ۶۷/۹.

که چرې ته رښتوني نې نو اسمان په مونږ راوغورزوه په مونږ باندې کاڼږې ولې نه راوروې. ابو جهل بن هشام هم دا ونیلی چې﴿ اللّٰهُمَّ إِن كَانَ هٰذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِندِكَ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِّنَ السَّمَاءِ أَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴾که دا رښتوني قرآن دې نو په مونږ باندې د آسمان نه کاڼږې ولې نه راوروې. نو دا آیت مبارك نا زل شو چې ﴿وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَأَنتَ فِيهِمْ ﴾ یعنی ترکومې چه ته په دوی کښې وې الله تعالی به دوی ته عذاب نه ورکوی یا ترکوم وخته پورې چه هغوی استغفارکوی (١) او وئی فرمائیل ﴿ وَلَقَدْ جِئْتُمُونَا فُرَادَىٰ كَمَا خَلَقْنَاكُمْ أَوَّلَ مَرَّةٍ وَتَرَكْتُم مَّا خَوَّلْنَاكُمْ وَرَاءَ ظُهُورِكُمْ ۖ وَمَا نَرَىٰ مَعَكُمْ شُفَعَاءَكُمُ الَّذِينَ زَعَمْتُمْ أَنَّهُمْ فِيكُمْ شُرَكَاءُ ۚ لَقَد تَّقَطَّعَ بَيْنَكُمْ وَضَلَّ عَنكُم مَّا كُنتُمْ تَزْعُمُونَ ﴾ یعنی تاسو به مونږ له ځان له ځان له راځئ. لکه څنګه چه په اول ځل مونږ تاسو پیدا کړی وئ. عطاء ﷫ وائی چه د دې مضمون لس آیاتونه په قرآن پاك کښې دی. بریده ﷜ وائی چه ما عمرو بن العاص﷜ جنګ احد کښې په اس د پاسه سور اولیدو چه دا وینا ئی کوله اې الله تعالیٰ! محمد ﷺ چه څه وائی که هغه رښتیا وی نو ما سره د اس په زمکه کښې ورخښ کړې (دا د هغه وخت خبره ده چه کوم وخت عمرو بن العاص﷜ ایمان نه وو راوړی).

د دې امت د جاهلانو هم داسې وینا وه، الله تعالی خپل آیات بیا سردوباره کوی او په هغوی باندې د خپل رحمت ذکر کوی چه ترکومې هغوی استغفارکوی اوستا موجودګی په دوی کښې ده مونږ به په هغوی باندې د آسمان نه عذاب نه نازلوو. مشرکانوبه د بیت الله شریف طواف کولو او وئیل به نی(لبيك اللهم لبيك لبيك لاشريك لك لبيك) نو حضور ﷺ به فرمائیل چه بس بس هم دغه ځائ پورې وائې وړاندې مه وائې خو کافرانو به ورسره دا هم وئیل(الا شريكا هولك تملكه وماملك) خو ستا یو شریك هم دې ته د هغه هم مالك نې او د هغه د املاك هم مالك نې او بیا به ئی ورسره وئیل (غفرانك) نو الله تعالی دا آیت نازل کړو چه ترکومې ته په دوی کښې نې د عذاب نه به محفوظ وی. ابن عباس ﷜ وائی هغوی ته دوه امانونه حاصل وو یو خو د نبی کریم ﷺ وجود مبارك اودویم پس د شرك نه استغفار. بیا د نبی کریم ﷺ د تللو نه پس د هغوی د معافئ سبب صرف استغفار پاتې شو. قریشو به په خپل مینځ کښې وئیل چه الله تعالی محمد ﷺ دزمونږ په مینځ کښې بزرګ جوړکړې دې. د ورځې به ئی الله تعالی سره ګستاخی کوله اود شپې به ئی پښیمانتیا سره وئیل (غفرانك اللهم) نو الله تعالی ﴿ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَأَنتَ فِيهِمْ ﴾ والا آیت نازل کړو.یعنی چه انبیاء علیهم السلام ترکومې د کلی نه وتلې نه وی په قوم باندې عذاب نه راځی. په هغوی کښې بعضې هغه خلق هم وو چه د اول نه ئی ایمان راوړې وو. هغوی به استغفار کولو او مونځونه به ئې کول دا مسلمانان وو اود نبی کریم ﷺ د هجرت کولونه پس هم په مکه کښې پاتې وو او استغفاربه ئی کولو. دا اهل مکه د عذاب د واقع کیدونه بچ شو ځکه چه دا ښه خلق تراوسه پورې په هغوی کښې وو. رسول الله ﷺ فرمائیلی چه زما نه پس به هم ترقیامته پورې استغفار خلق د عذاب نه بچ کوی. (٢) رسول الله ﷺ فرمائیلی چه شیطان قسم اوخوړلو اې الله تعالی ستا په عزت مې دې قسم وی ترکوم وخته پورې چه ستا د بندیګانو په بدنونوکښې روحونه دی زه به دوی دهوکه کوم. الله تعالی فرمائی چه زما دې په خپل عزت قسم وی ترکومې چه هغوی استغفارکوی زه به هم هغوی بښم.(٣)

---

١) صحیح بخاری کتاب التفسیرسوره الانفال ﴿وإذ قالوا اللهم إن كان هذا هوالحق من عندك فامطر﴾:٤٦٤٨، صحیح مسلم :٢٧٩٦.

٢) ترمذی کتاب تفسیر القرآن باب ومن سوره الانفال :٣٠٨٢.

٣) احمد:٢٩/٣،مسندابی یعلی:١٢٧٦٣، حاکم:٢٦١/٤.

| وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمْ |
|---|
| اونه دي الله \| چې عذاب ورکړي دوئ ته |
| او الله ﷻ داسې نه کوي چې دوئ ته عذاب ورکړي |
| وَأَنْتَ فِيهِمْ ۚ وَمَا كَانَ اللّٰهُ مُعَذِّبَهُمْ وَهُمْ |
| او حال دا چې ته \| موجود نې په دوئ کښې \| اونه دي الله \| عذابونکې د دوئ \| او حال دا چې دوئ |
| او ته په دوئ کښې موجود یې؛ او نه الله ﷻ داسې خلقو ته عذاب ورکوي چې هغوئ |
| يَسْتَغْفِرُونَ ۝ وَمَا لَهُمْ أَلَّا يُعَذِّبَهُمُ اللّٰهُ وَهُمْ يَصُدُّونَ |
| بښنه غواړي \| او څه وجه ده \| دوی د پاره \| چې نه به ورکوي عذاب دوی ته الله \| او حال دا چې دوئ \| منع کوي خلق |
| بښنه غواړي \| خو اوس به پرې الله ﷻ ولې عذاب نه راولي \| حال دا دې چې هغوئ نور خلق |
| عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَمَا كَانُوا أَوْلِيَاءَهُ ۚ |
| د مسجد حرام نه \| اونه دی دوئ \| سرپرستان دهغې |
| د مسجد حرام نه منع کوي \| ..... ددې باوجود چې د مسجد حرام مستحق سرپرستان هم نه دی |
| إِنْ أَوْلِيَاؤُهُ إِلَّا الْمُتَّقُونَ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ۝ وَمَا كَانَ |
| نه دی سرپرستان د دې \| مګر پرهیزګاران \| خو لیکن \| اکثر د دوئ \| نه پوهیږی \| اونه دې |
| ددې سرپرستان خو صرف پرهیزګار خلق کیدې شي \| خو زیات خلق په دې نه پوهیږی \| ...............او د |
| صَلَاتُهُمْ عِنْدَ الْبَيْتِ إِلَّا مُكَاءً وَتَصْدِيَةً ۚ فَذُوقُوا |
| مونځ د دوئ \| په خوا د بیت الله کښې \| مګر \| شپیلې وهل دی \| او لاسونه پړقول دی \| نو اوڅکئ |
| بیت الله په خوا کښې د دوئ مونځونه څه وو \| خو شپیلې وهل او لاسونه پړقول وو \| نو اتې (کافرو) |
| الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُونَ ۝ |
| عذاب \| په سبب دهغې \| چې وئ تاسو \| چې انکار به موکولو |
| دخپل انکار په سبب د عذاب مزه اوڅکئ \| |

**قوله تعالي:: وَمَا كَانُوا أَوْلِيَاءَهُ ۚ**

**د مسجدالحرام متولي حقيقت کښې متقي خلق دی مشرکان نه دي:**- دا خود عذاب لائق ووخود رسول الله ﷺ په برکت د عذاب نه بچ شو. په دې وجه چه کله حضورﷺ مکه پریخوده نو الله تعالی د بدر په ورځ په هغوی باندې عذاب نازل کړو. د هغوی سرداران قتل کړې شو اود هغوی لوئ لوئ خلق بندی کړې شو. الله تعالی هغوی ته د استغفار هدایت فرمائیلې وو خودوی به ورسره شرك او فساد هم یوځائ کولو. قتاده اوسدی رحمهما الله وائی چه دې مقتولینو د قریشو استغفار نه کولو که کولو نی نو الله تعالی به د بدر په ورځ دوی له د ذلت مرګ نه ورکولو او که چرته پخپله دې کمزوری مسلمانانو په مکه کښې استغفارنه کولو نو د مکې په خلقو به داسې مصیبت راتلو که اخوا کولو نی نو اخواکولې به نی نه شو. هم د استغفار په برکت په مکه کښې د عذاب نازلیدونه قریش بچ کړل اود مکې د مسلمانانو

په صدقه کېښي هغوی د یوې مودې پورې د عذاب نه بچ شو. دحدیبیه په ورځ الله تعالی فرمانیلي وو﴿ هُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَالْهَدْيَ مَعْكُوفًا أَنْ يَبْلُغَ مَحِلَّهُ ﴾(١)یعنی دې خلقو کفر اوکړو بیت الله ته د راتلونه ئې ته منع کړې د قربانئی څناور ئې د حلالولو ځایٔ ته رسولو ته پرینخودل. که په مکه کېښې دا مؤمنان سړي او ښځې نه وو کوم چه ته نه پیژنې که تا هغوی ختم کړې وې نو د هغوی د بې خبرې په وجه به نقصان دررسیدلو. دا د دې د پاره اوشو چه الله تعالی په خپلوبندیګانوکېښې څوك اوغواړی په خپل رحمت کېښې داخل کړی. که چرې داخلق دلته پناه اخستونکی نه وو ډیر مخکښې به د الله تعالی عذاب په دوی نازل شوې وو. چه نبیٔاکرم ﷺ په مکه کېښې وو نو الله تعالی فرمانیلې وو چه ستا په موجودګئی کېښې به دوی نه په عذاب کوم. خو چه کله حضورﷺ مدینې طرف ته هجرت اوکړو نو الله تعالی اوفرمانیل چه ستا جانشین اوس هم په مکه کېښې دی او استغفار کوی په دې وجه به اوس هم عذاب نه ورکوم. او چه کله دا مسلمانان هم د مکې نه اووتل نو فرمانی چه اوس ولې عذاب ورنه کړو. هغوی تاسو مسلمانان د الله تعالیٰ د کعبې د راتلونه منع کړنې او هغوی خود الله تعالی دوستان نه وو. نو الله تعالی د مکې د فتح عذاب په هغوی نازل کړو. او اوونیلې شو چه دا آیت ﴿مَا كَانَ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمْ﴾ناسخ دې. عکرمه او حسن بصری رحمهم الله وائی چه په انفال کېښې ﴿مَا كَانَ اللّٰهُ﴾ والا آیت د دې نه پس والا ﴿ مَا كَانَ اللّٰهُ مُعَذِّبَهُمْ﴾ والا آیت منسوخ کړې دې. نو ﴿ فَذُوقُوا الْعَذَابَ﴾ اوفرمانیلې شو نو اهل مکه سره جنګ اوشو نو ولږې او تکلیفونو هغوی په عذاب کېښې اخته کړل. دا الله تعالی اهل شرك د عذاب نه مستثنی کړې هم دې بیانې دا هم اوفرمانیل چه دوی ولې عذاب نه کړې شی چه دمسجد الحرام نه دوی مسلمانان منع کوی. د الله تعالی دوستان هغوی نه بلکه متقیان خلق دی. خو اکثر خلق دا خبره نه پیژنی. حالانکه هم دغه منع شوی خلق د کعبة الله ډیر اهل دی چه په دې کېښې مونځ اوکړی طواف اوکړی اودا کافران د مسجد الحرام اهل نه دی. کله فرمائی چه د مشرکانو څه حق دې چه د الله تعالی جماتونه آباد کړی سره د دې چه کفر د هغوی په زړونوکېښې پوخ دې. د هغوی خو ټول اعمال بې ځایه اود دوزخ خشاك دې. جماتونه خودې هغه خلق آباد کړی چه په الله تعالی اوپه ورځې د قیامت ایمان لری. مونځونه کوی زکوتونه ورکوی اودالله تعالی نه بغیر چانه نه وریږی. هدایت موندونکی خلق هم دغه دی. او اوفرمانیلې شو ﴿وَصَدٌّ عَنْ سَبِيلِ اللّٰهِ وَكُفْرٌ بِهِ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَإِخْرَاجُ أَهْلِهِ مِنْهُ أَكْبَرُ عِنْدَ اللّٰهِ﴾ دالله تعالی دلارې اود مسجد الحرام نه منع کول اود مکې خلق د مکې نه ویستل دا د الله ﷻ په نیز لویه ګناه ده.

دواولیاءنه څوك مراد دی؟رسول اللهﷺ نه تپوس اوشو چه ستااولیاء کوم خلق دی نوحضورﷺ اوفرمائیل متقیان خلق.(٢)بیا حضورﷺ تلاوت اوفرمائیلو﴿ إِنْ أَوْلِيَاؤُهُ إِلَّا الْمُتَّقُونَ﴾ رسول الله ﷺ قریش راجمع کړل او تپوس ئې اوکړو چه آیا څوك غیر قریش هم تاسو کېښې شته نو خلقو ونیل زمونږ خوریونه زمونږ حلیف او غلامان. نو حضورﷺ اوفرمائیل حلیف غلام او خوریونه ټول د یوې قبیلې نه دی دا ټول اولیاء دی خو زمااولیاء متقیان خلق دی(٣) مجاهد رحمه الله وائی چه دې نه مجاهدین مراد دی چه څوك هم وی او چرته هم وی. بیا د دې خبرې ذکر دې چه دا خلق په مسجدالحرام کېښې څه کوی. ارشاد دې چه د هغوی عبادت بس هم دومره وو چه کعبې ته به راتلو به نې هم لکه د څناورو شپیلی وهل او لاسونه به نې وهل، بربنډ به نې طوافونه کول او خلو کېښې به نې ګوتې ورکولې او شپیلی به نې وهل مخونه به نې ټیټول او لاسونه به نې وهل بس هم دا به نې عبادت ګنړلو. د ګس طرف نه به نې طواف کولو مقصد به نې داوو چه دمسلمانانو په عبادت کېښې خلل واچوی، دغه شان به دې خلقوبه مؤمنانو پسې ټوقې

١) (سورة الفتح)
٢) المعجم الصغیر:١/١١٥ ح٣٠٥.
٣) حاکم:٢/١ ٣٠،مجمع الزوائد: ١٠/ ٢٦.

مسخرې کولې. عبدالرحمن بن زيد رحمه الله د تصديه معنی وائی خلق د الله تعالی د لارې نه منع کول. فرمائی چه اوس د خپل کفر مزه اوڅکئی يعنی داعذاب چه د بدر په ورځ قتل کړې شونی او قيد کړې شونې. مجاهد رحمه الله وائی چه په اهل اقرار باندې عذاب د تورې په ذريعه راخی اوپه اهل تکذيب باندې د چغې او زلزلې په توګه راځی.

| | | | |
|---|---|---|---|
| إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا | يُنفِقُونَ | أَمْوَالَهُمْ | لِيَصُدُّوا |

بيشکه هغه کسان چې انکار ئې اوکړو دحق نه | الګوی هغوئ | مالونه خپل | دپاره ددې چې منع کړی خلق

بيشکه هغه څوک چې د حق نه ئې انکار کړې دې | اوهغوئ خپل مالونه په دې کښې لګوی | چې

| | | | |
|---|---|---|---|
| عَن سَبِيلِ اللَّهِ | فَسَيُنفِقُونَهَا | ثُمَّ تَكُونُ | عَلَيْهِمْ |

دلارې د الله نه | پس ورپسې اوبه لګوی نورمالونه هم | بيابه | وی | په هغوئ باندې

خلق دالله ﷻ د لارې نه منع کړی | نو لابه نور مالونه هم لګوی | اوبيا به ئې دا خرچونه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| حَسْرَةً ثُمَّ | يُغْلَبُونَ | وَالَّذِينَ | كَفَرُوا | إِلَىٰ جَهَنَّمَ |

ذريعه دافسوس | بيابه | غلبه حاصله کړې شی په دوئ | اوهغه کسان | چې کافران دی | دوزخ ته به

دافسوس سبب اوګرځی | اوبيا (آخر) به بيلات اوکړی | اوبيشکه هغه کسان چې کفرئې اختيارکړې دې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يُحْشَرُونَ | لِيَمِيزَ اللَّهُ | الْخَبِيثَ | مِنَ الطَّيِّبِ | وَيَجْعَلَ |

جمع کړې شی | دپاره ددې چې جدا کړی الله | ناپاک | د پاکو نه | اوکيږدی

تول به دوزخ ته راغونډ کړې شی | د دې دپاره چې الله ﷻ پليت (کافران) دپاکو (مومنانو) نه جدا کړی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الْخَبِيثَ | بَعْضَهُ | عَلَىٰ بَعْضٍ | فَيَرْكُمَهُ | جَمِيعًا | فَيَجْعَلَهُ |

ناپاک | خينی دهغې | په خينو باندې | بيا جمع کړی هغه | تول | اواوغورزوی هغه

اوبيا تول پليت (کافران) رايوځای کړی | ................ او دوزخ ته ئې اوغورزوی

| | | | |
|---|---|---|---|
| فِي جَهَنَّمَ | أُولَٰئِكَ | هُمُ | الْخَاسِرُونَ |

په دوزخ کښې | دغه کسان چې دی | هم هغوئ | تاوانيان دی |

.............نوهم دغه خلق دی چې په تاوان کښې پراته دی |

**قوله تعالى: لِيَصُدُّوا عَن سَبِيلِ اللَّهِ**

**دماتې خوړونکوکافرانو ناکامه تدبيرونه:-** په قريشو چه کله په جنګ بدرکښې مصيبت راغلو اودا خلق مکې ته واپس شو اوابوسفيان هم قافلې سره واپس شو نو عبدالله بن ابی ربيعه او عکرمه بن ابی جهل او صفوان بن اميه اود قريشو نور ډير کسان د چا پلاران رونړه او خامن چه په جنګ کښې په کار راغلي وو ابوسفيان اود هغوی سره دچا مال چه په دې قافله کښې وو ته اوونيل چه اې معشر قريش محمد ﷺ تاسو لاندې کړی ئې، ستاسو شرفاء ئې قتل کړل، هغوی سره د بيا جنګ کولو د پاره د قافلې دا مال تاسو ورکړئې دې د پاره چه مونږ د هغه نه خپله بدله واخلو. نو هغوی تول مال ورکړو هم د دې باره کښې الله تعالی فرمائی چه ﴿ الَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ ﴾ يعنی کافران خپل مال خرچ کوی دې د پاره چه دالله

تعالی لار بند کړی اوهغوی به روپۍ خرچ کوی او همدغه مال به نی ضائع شی نو بیا به ارمان هم کوی مونږ به هغوی دوباره مغلوب کړو. او هغوی به د دووزخ طرف ته اوشړلې شی. ضحاك رحمه الله وائی چه دا آیت د ابوسفیان او دمال د خرچ باره کښې نه دې نازل شوې بلکه دا آیت د اهل بدر باره کښې نازل شوې. په هرتقدیر دا آیت عام دې که په هره باره کښې نازل شوې وی او تول نزول خاص وی. الله تعالی خبرورکړې دې چه د حق لارې د تابعدارئی منع کولو د پاره کافران بنه روپۍ پیسې خرچ کوی خود دوی دا مالونه به ضائع کیږی هغوی ته به حسرت او پښیمانتیا وی. هغوی د الله تعالی نور مر کول غواړی او الله تعالی خپل نور کامل کول غواړی که پخپله په کافرانو باندې دا سخت ولې نه وی. الله تعالی د خپل دین ناصر او خپله کلمه غالب کونکې دې. د هغوی د پاره به په دنیاکښې رسوائی وی او په آخرت کښې د دوزخ عذاب وی. څوك چه ژوندی پاتې شو هغوی به خپلو سترګواولیدل او په خپلو غوږونو باندې واوریدل چه آخر هغوی څنګه رسوائۍ سره مخ شو. او چه څوك مړه شول یا قتل شول نو هغوی د همیشه رسوائۍ او خراب عذاب سره مخ شو.د الله تعالی ارشاد دې ﴿ لِيَمِيزَ اللَّهُ الْخَبِيثَ مِنَ الطَّيِّبِ ﴾. حضرت ابن عباس رضی الله عنه وائی چه د نیك بختو امتیاز د بدبختونه دې چه مؤمن د کافر نه جدا شو اودا هم احتمال دې چه د امتیاز نه مراد هم د آخرت امتیاز وی. لکه چه فرمائی مونږ به مشرکانوته اووایو چه تاسو او ستاسو شریکان په خپل ځاې اودریږئی چه مونږ د هغوی په مینځ کښې فرق اوکړو. او فرمائی چه کله قیامت شی نو هغوی به جدا جدا شی او وئی فرمائیل چه اې مشرکانو اوګناهګارانوا نن د مؤمنانو نه ځان له اوجداشئی اود دې مطلب هم احتمال دې چه د دې نه هم په دنیاکښې امتیاز مقصود وی چه د مؤمنانو اعمال جدا اود کافرانو اعمال جدا. اود ﴿ لِيَمِيزَ ﴾ لام سببیه کیدې شی یعنی د ګناهونو په سبب مال خرچ کولو په سبب الله تعالی به خبیث د طیب نه جداکړی. یعنی د دې فرق کولو د پاره کافرانو سره جنګ د پاره څوك تابعداری کوی او څوك مخ اړولو سره د ګناه سبب جوړیږی. لکه چه فرمائی د دواړو لښکرو د جنګ په وخت کښې څه چه تاسو ته اورسیدل هغه د الله تعالی په حکم سره وو چه په مؤمنانواو کافرانوکښې فرق اوشی. هغوی ته وئیلی کیږی چه راشئی د الله تعالی په لارکښې جهاد اوکړئی.جارحانه یا مدافعانه خو وائی که د جنګ د اصولونه مونږ خبر وو نو خامخا به جنګیدلو. او فرمائی چه الله تعالی آخر مؤمنان ولې په خپل موجوده حال باندې پریږدی هغه خو امتحان کولو سره ازمیښت کول غواړی چه ښه څوك دې او خراب څوك. او د غیب په کارونو باندې هغه تاسو ولې خبر کړی او فرمائی چه آیا تاسو ګمان کوئی چه جنت ته به لاړشئی. سره د دې چه د مجاهدینو د صبر لا اوسه پورې الله تعالی امتحان نه دې اخستې. د دې مثال په سورة برائة کښې هم دې. نومعنی دا شو چه مونږ به د کافرانو نه زیات تاسو ازمیښت کوو هغوی به تاسو سره جنګ کوی ستاسو خلاف به مالونه خرچ کوی اودا صرف د دې فرق د پاره چه خبیث څوك دې او طیب څوك دې.﴿رکم﴾ وائی یو پسې بل څیز راجمع کولوته لکه چه د اوریځې باره کښې اوفرمائیل چه ﴿ثُمَّ يَجْعَلُهُ رُكَامًا﴾ یعنی قط په قط اوریځې. ﴿فَيَجْعَلَهُ فِي جَهَنَّمَ ۚ أُولَٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ﴾ بیا به دوزخ کښې واچولې شی او ډیر نقصان کښې به وی.

| | قُلْ | لِّلَّذِينَ |
|---|---|---|
| | اووایه | هغه کسانوته |
| | ...............تهٔ کافرو ته اووایه | |

| كَفَرُوٓا | إِن يَنتَهُوا | يُغْفَرْ | لَهُم | مَّا | قَدْ سَلَفَ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې کافران دی | که منع شو هغوی | نومعاف به کړې شی | هغوی ته | هغه څه | چې مخکښې شوی دی |
| که دوی اوس هم منع شی | ............ | نوتیر شوی ګناهونه به ورته اوبښلې شی | | | |

| وَاِنْ | يَّعُوْدُوْا | فَقَدْ مَضَتْ | سُنَّةُ | الْاَوَّلِيْنَ۝ | وَقَاتِلُوْهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوكه | بيا اوګرځي هغوئ | نو تيره شوې ده | طريقه | داولنو خلقو | او اوجنګيږئ دهغوئ سره |
| اوكه بيابيا (نافرماني) كوي | | نو پخوانو قومونو سره چې څه شوي دي هغه ښكاره دي | | | اودوئ سره |

| حَتّٰى | لَا تَكُوْنَ | فِتْنَةٌ | وَّيَكُوْنَ | الدِّيْنُ | كُلُّهٗ | لِلّٰهِ | فَاِنِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| تر هغې پورې | چې پاتې نۀ شي | فتنه | اوشي | دين | ټول | الله دپاره | نو كه |
| ترهغې جنګ كوئ چې فتنه (شرک) پاتې نۀ شي | | | اوټول دين صرف د يو الله ﷻ شي | | | | |

| انْتَهَوْا | فَاِنَّ اللّٰهَ | بِمَا | يَعْمَلُوْنَ | بَصِيْرٌ۝ | وَاِنْ |
|---|---|---|---|---|---|
| منع شو هغوئ | نو بيشكه الله | په هغه كارونو | چې كوي ئې هغوئ | ليدونكې دې | اوكه |
| نوكه دوئ (دفتنې يعني شرک نه) منع شي | نو الله ﷻ ددوئ كارونه وينې ګوري | | | | ..............او كه |

| تَوَلَّوْا | فَاعْلَمُوْٓا | اَنَّ اللّٰهَ | مَوْلٰىكُمْ ؕ | نِعْمَ الْمَوْلٰى |
|---|---|---|---|---|
| مخ واړوؤهغوئ | نوپوهه شئ | چې بيشكه الله | سرپرست ستاسو دې | ښۀ مولى دې |
| دوئ مخ اوګرځوي | نو پوهه شئ چې الله ﷻ ستاسو ملګرې دې | | | الله ﷻ ډيرښۀ ملګرې دې |

| وَنِعْمَ النَّصِيْرُ۝ |
|---|
| اوښۀ مددګاردې |
| اوډير ښۀ مددګار دې |

قوله تعالىٰ: لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ

**دَ فتنې معنى اومفهوم اودَ فتنې دَ ختمولو پورې جهاد جارى ساتل:**-رسول الله ته خطاب كيږى چه دې كافرانوته اووايه كه تاسو دكفر اودښمنئ نه منع شوئې اوبه اسلام كښې داخل شوئې د مغفرت طلبګار شوئې نو چه د كفر په زمانه كښې مو كومه ګناه كړې وه الله تعالى به ئې معاف كړې. لكه څنګه چه نبى كريمﷺ فرمائيلي دى چه څوك اسلام ته راغلو او نيك پاتې شو نود هغه به د جاهليت د ګناهونو سره هم مواخذه نه كيږى او چه د چا د اسلام نه پس ګناهونه برابر پاتې شو نود هغه نه به د هرو دواړو زمانود ګناهونو باره كښې نپوس كولې شي([1])حضورﷺ اوفرمائيل چه اسلام د وړاندينوګناهونود پاره توبه ده([2])او توبه خو د خپل وړاندينې ګناهونه هم ختموى خو اې نبىﷺ! كه دوى په خپلو مخكينو چالونو باندې قائم وو او دښمنې ئې پرينخوده نو آيا دوى ته پته نشته چه د مخكينو خلقو څه حشر شوې وو. د دښمنئ او تكذيب مخكينو امتونوڅه نتيجه كتلې وه. يادساتئ عذاب او عقوبت د دې علاج دې. د وړاندينو طريقو نه مجاهد او سدى رحمهما الله د بدر ورځ مراد اخلى. اوفرمائى چه دوى سره ښه جنګ اوكړئ چه فتنه ډوبه شي او شرک ختم شي اوټول دين هم د الله تعالى شي.

يوسړې ابن عمرﷺ له راغلو اوونى ونيل اې ابوعبدالرحمن الله تعالى فرمائيلي دى كه د مؤمنانو دوه

---

[1]) صحيح بخارى كتاب استتابه ا لمرتدين باب اثم من اشرك بالله وعقوبته في الدنيا والاخرة..:۶۹۲۱، صحيح مسلم:۱۲۰، ابن ماجة:۴۲۴۲، احمد:۴۰۹/۱، ابن حبان:۳۹۶.

[2]) احمد:۲۰۴/۴،وهوصحيح بحديث مسلم. دَ دې اصل صحيح مسلم كتاب الايمان باب كون الاسلام يهدم ماقبله..:۱۲۱ كښې موجوددې.

ډلي په خپل مينځ کښي جنګ اوکړي نو دوئ مينځ کښي صلح اوکړي بيا که يوه باغي وي د هغي سره اوجنګيږي تاسو په جنګ کښي ولي نه شريکيږئي اود داسي دوو ډلو په قرآن کښي ذکر شته؟ ابن عمرﷺ اوفرمائيل چه اې وراره په جنګ د نه شريکيدو پيغور ماته آسان دې په نسبت د هغې خبرې چه زه يو مسلمان عمداً قتل کړم. الله تعالى فرمائي چه تاسو هغوی سره جنګ اوکړئي ترهغه وخته پورې چه فتنه باقي پاتې نه شي. ابن عمرﷺ فرمائي چه د رسول اللهﷺ په زمانه کښي زمونږ هم دغه کيفيت وو. په اسلام کښي ډير کم خلق وو. د سړی د دين پاره کښي به ازميښت کيدلو خلق به يا خو قتل کولي شو او يا به قيد او بند په مصيبت کښي اخته کولي شي. خو چه کله اسلام ترقي اوکړه نو دا فتنه باقي پاتې نه شوه. مطلب دا چه اعتراض کونکی سړی د ابن عمرﷺ نه د خپل خان موافق خبره هډو اونه کتله نو د خبرې مخ ني بدل کړو او وني وئيل چه د حضرت علیﷺ او حضرت عثمانﷺ باره کښي ستا څه خيال دې. ابن عمرﷺ اوفرمائيل چه د حضرت عثمانﷺ د پاره خو الله تعالى پخپله فرمائيلی دی چه اومې بښلو او ته د حضرت عثمانﷺ مغفرت ناخوښه کوې. او حضرت علیﷺ خو د رسول اللهﷺ د تره خوئ دې او خوم ني دې او هغه اوګوره هلته د نبي کريمﷺ لور اود حضرت علیﷺ بي بي اوسيږي.([1])

سعيدبن جبيررحمه الله وائي چه ابن عمرﷺ مونږ له راغلو او وني وئيل د جنګ او فتنې باره کښي ستاسو څه رائې ده او فتنه څه ته وائي نبي کريمﷺ به کافرانو سره جنګ کولو او هغه وخت به فتنه کورته راغلې وه اوستاسو جنګ خود ملک او حکومت د پاره وی. ([2]) د حضرت ابن عمرﷺ نه روايت دې چه د ابن زبيرﷺ د فتنې متعلق دوه سړی هغه له راغلل او وني وئيل تاته پته ده چه د خلقو عمل څه وو. ته د حضرت عمرﷺ خوئ اود رسول اللهﷺ صحابي يئې .د دې فتنې نه ته کومې خبرې منع کړې نو وني وئيل الله تعالى په مسلمان باندې د مسلمان وژل حرام کړی دی. نو خلقو وئيل چه آيا الله تعالى نبي کريمﷺ ته نه وو فرمائيلی چه د فتنې ډوبولود پاره قتال کوه دې د پاره چه دين صرف د الله تعالى د پاره شي([3]) نو وني وئيل چه مونږ خو د فتنې د خښولو د پاره ډير جنګونه کړی دی تر دې چه فتنه پاتې نه شوه. او تاسو د مسلمانانو په دوو ډلوکښي د دې د پاره جنګ کول غواړئي چه فتنه نوره هم زياته شي او دين د الله تعالى په ځائ د غيرالله شي. اسامه بن زيدﷺ وائي زه خو به داسې سړي چرې هم قتل نه کړم چا چه﴿لااله‌الاالله﴾ وئيلي وي نوسعد بن مالکﷺ هم داسې اووئيل.نو هغه سړی د ﴿قَاتِلُوهُمْ﴾ والا آيت اولوستلو. نو دې دواړو اووئيل چه د فتنې د ختمولو د پاره داسې جنګونه مونږ کړی دی او فتنه ختمه شوې ده. او دين خالص د الله تعالى د پاره شوې دې. ابن عباسﷺ د فتنې ډوبولو نه د شرک ډوبيدل مراد اخلي.﴿ وَيَكُونَ الدِّينُ لِلَّهِ ﴾ نه مراد خالص توحيد دې په کوم کښي چه د شرک يوځائ کول نه وی. او الله تعالى سره په اقتدار کښي څوک شريك نه وی جوړ کړې شوې. زيد بن اسلم وائي چه مطلب دا دې د دين اسلام په موجودګئی کښي کفر باقي پاتې نه شي. د دې تصديق د دې حديث نه کيږی چه حضور فرمائيلی چه زه د کافرانو سره په جنګ کولو باندې مامور شوې يم تردې چه د ﴿لا اله الا الله﴾ قائل شي. که هغوی قائل شو نود هغوی ځان او مال محفوظ شو او د څه وجې نه په قصاص وغيره کښي قتل کولې شی اود دې حساب الله تعالى سره دې. ([4]) د حضورﷺ نه د داسې سړی باره کښي سوال اوکړې شو چا چه د بهادرئي په خودلو کښي جنګ کړې وی يا د قوم خاندان په حمايت او ځان خودلوپه خاطر نو په دې کښي کوم يو جنګ د الله تعالى په لارکښي دې؟ نو حضورﷺ اوفرمائيل چه

---

[1]) صحيح بخاری کتاب التفسير سوره الانفال باب ﴿وقاتلوهم حتى لاتکون فتنة ويکون الدين کله لله...﴾: ٤٦٥٠.

[2]) صحيح بخاری حواله سابق: ٤٦٥١.

[3]) صحيح بخاری کتاب التفسير سوره البقره باب ﴿ وقاتلوهم حتى لاتکون فتنة﴾ :٤٥١٣.

[4]) صحيح بخاری کتاب الزکاه باب وجوب الزکاه: ١٣٩٩، صحيح مسلم:٢٠.

صرف هغه جنګ چه د اعلاء کلمة الله په خاطر في سبيل الله په عمل کښې راغلې وی.(۱)
د الله تعالی ارشاد دې ﴿فَإِنِ انتَهَوْا﴾ يعنی که سره د کفر ستاسو د جنګ نه منع شو نو تاسو هم د هغوی نه لاس بند کړئ ځکه چه تاسو ته د هغوی د زړه حال څه معلوم دې؟ ځه چه د هغوی د زړه حال دې الله تعالی ته معلوم دې او هغوی ته ګوري. لکه چه فرمائی که چرې هغوی توبه اوکړه مونځ ئې کولو زکوة ئې ورکولو نو بیاد هغوی نه تپوس کول مناسب نه دی. بل ځائ کښې ارشاد دې چه ﴿ فَإِخْوَانُكُمْ فِي الدِّينِ ﴾ هغوی ستاسو دینی رونړه دی. اوفرمائی چه د فتنې ختمیدوپورې هغوی سره جنګ کوئې چه هم د الله تعالی مذهب رائج شی. الزام خو صرف د حد نه زیاتې کونکو باندې دې. وائی چه اسامه ﷺ په یو سړی باندې توره اوچته کړه هغه اوونیل (لااله الاالله) خو اسامه ﷺ په توره اووهلو او قتل ئې کړو. نبی کریم ﷺ ته خبر اورسیدلو نو وئې فرمائیل چه (لااله الاالله) نه پس هم تا هغه قتل کړو اوس به ته د قیامت په ورځ (لااله الاالله) سره څه کوې؟ نو اسامه ﷺ عرض اوکړو یارسول الله ﷺ! هغه خو صرف د خپل خان بچ کولو د پاره داسې اوکړه. نو وئې فرمائیل چه آیا تا د هغه زړه څیرلې وو اودې کتل؟ بیا به حضور ﷺ بار بار هم دا فرمائیل چه د قیامت په ورځ به څه کوې؟ اسامه ﷺ وئیل چه ما دا خواهش کولو چه افسوس زه تر نن ورځې پورې مسلمان شوې نه ووم چه د اسلام په ګمان کښې مې هغه نه قتل کولو.(۲)

- د عبدالملك بن مروان خط اود عروه ﷺ جواب:: اوکه چرې هغوی شاکړه اوتختیدل نو الله تعالی ته معلومه ده چه الله تعالی ستاسو مولی دې. هغه ډیر ښه مولی دې اوکه د هغوئ عادت ستاسو خلاف او ستاسو په محاربت باندې قائم پاتې شو نو الله تعالی ستاسو مولی او ستاسو ناصر دې. عبدالملك بن مروان حضرت عروه ﷺ ته اولیکل او یو څو خبرې ترې معلومې کړې. نو عروه ﷺ داسې جواب وراولیګه سلام علیك! زه د الله تعالی واحد حمد کوم او بیا زه تاته لیکم چه تازما نه د نبی کریم ﷺ د مکې نه مدینې ته د هجرت واقعاتو تپوس کړې دې تاته ښایم قوت او طاقت د الله تعالی نه بغیر د بل چا په لاس کښې نشته. الله تعالی حضور ﷺ ته نبوت ورکړې وو هغه څنګه ښه نبی او څنګه ښه سید وو الله تعالی دې هغه ته جزائې خیر ورکړی او په جنت کښې دې د هغه مخ مبارك مونږ ته اوښائی هم د هغه په دین او ملت باندې دې مونږ اوساتی اوهم د هغه په دین دې مرګ راکړی او هم هغه سره دې مونږ راپاسوی. کله چه هغوی ﷺ قوم د هدایت او نور طرف ته راوغوښتو نو خلقو د هغوی تبلیغ ته څه داسې اهمیت ورنه کړو. د حضرت ﷺ وحی به ئې اوریده هم او چه کله به هغه د دوی د بتانو ذکر شروع کړو اومالدار قریش د طائف نه مکې ته راغلل نو هغوی کښې اکثرو باندې دا تبلیغ ناساز ولګیدو. د حضور ﷺ د تبلیغ نه ویزاره شو او چه څوك به مسلمانان هم شو نو هغوی به ئې غولول. نو مائل کیدونکی عام خلق هم بې رغبته شو. خو یو څو کسان په خپله مستقله اراده باندې قائم پاتې شو. د اسلام متعلق د هغوی خیالات خراب نه شو. اوس د قریشو سردارانو مشوره اوکړه چه په اسلام راوړونکو باندې سختئ اوکړئ. دا فتنه یوه زبردسته زلزله وه څوك چه په دې فتنه کښې اونختو بس اونختو او څوك چه الله تعالی محفوظ اوساتل هغه محفوظ پاتې شو. کله چه په مسلمانانو باندې دې قریشو ډیر ظلمونه اوکړه نو حضور ﷺ مسلمانانو ته مشوره ورکړه چه د حبشو ملك ته هجرت اوکړئ. د حبشو بادشاه یو نیك سړې وو د هغه نوم نجاشی وو. هغه ظالم بادشاه نه وو هر طرف ته د هغه تعریف وو.د حبشو ملك د قریشو د تجارت مرکز وو اود قریشو د سوداګرانو هلته کوررونه وو. چرته به چه

(۱) صحیح بخاری کتاب الجهاد باب من قاتل لتکون کلمه الله هی العلیاء: ۲۸۱۰، صحیح مسلم: ۱۹۰٤.
(۲) صحیح بخاری کتاب المغازی باب بعث النبی ﷺ اسامه بن زید: ٤۲٦۹، صحیح مسلم: ۹٦، ابوداؤد: ۲٦٤۳، احمد: ۵/۲۰۰، ابن حبان: ٤۷٥۱.

هغوی تجارت کولو او ډیر رزق به نی پیدا کولو. امن به نی حاصلولو او تجارت نی ښه په ترقئی وو. حضور ﷺ حکم اوکړو نو عام مسلمانان په چا چه قریشو ډیر ظلم کولو د حبشې طرف ته لاړل. خکه چه هغوی ته د خپل خان ویره وه او هغوی د همیشه د پاره هلته نه وو تلی صرف یو څو کاله اوسیدلی وو. هلته هم مسلمانانو اسلام خور کړو اودهغه ځایٔ شرفاؤ هم اسلام راوړلو. کله چه د قریشو کافرانو دا اوکتل چه په مسلمانانو باندې ظلم کولو سره هغوی حبشو ته ځی اود هغه ځایٔ خلق او سرداران خپل جوړوی نو هغوی دې وخت کښې دا مصلحت اختیارکړو چه نرمی اختیار کړنی. نو هغوی نبی کریم ﷺ او د هغه ملګرو سره د نرمئی سلوك شروع کړو. نو رومبې ازمیښت د مسلمانانو وو چه مسلمانان نی حبشو طرف ته اولیګل نو چه کله نرمی پیدا شوه او فتنه چه د هغې زلزلې مسلمانان په وطن پریخودو اوحبشو ته په تلو مجبوره کړې وو د هغې زور ښکته کیدودی خبرمهاجرین حبش بیا تیار کړه چه هغوی واپس مکې ته راشی. نو هغه لږ ډیر تلی هم وو واپس راغلل. په دې وخت کښې د مدینې انصار مسلمانان شو او په مدینه کښې هم اسلام په خوریدو شو. د دې مدینې د خلقو مکې ته تګ راتګ شروع شو دې سره د مکې والا نور هم وران شو مشوره نی اوکړه چه اوس خو په دوی باندې نوره هم سختئی کول پکار دی. نو په عامه توګه نی په مسلمانانو ظلمونه شروع کړل. مسلمانان په ډیرو مصیبتونوکښې اخته شو. دا د مسلمانانود پاره بله فتنه او ازمیښت وو. یوه فتنه خودا چه د حبشو طرف ته مسلمانانو له تیخته وه او دویمه فتنه د هغه ځایٔ د مسلمانانو واپس راتللو نه پس کله چه د مکې والا اوکتل چه دمدینې نه خلق راځی اومسلمانان کیږی. یوځل د مدینې نه اویا کسان راغلل چه معتبر او سرداران وواودا ټول مسلمانان شو حج نی اوکړو اومقام عقبه کښې دحضور ﷺ په لاس بیعت اوکړو او وعده نی اوکړه چه مونږ ستاشو او ته زمونږ شوې. که ستاسو اصحاب رضی الله عنهم زمونږ ښار ته راغلل یا تاسو تشریف راوړلو نو مونږ به ستاسو ﷺ اوستاسو د اصحابوکرامو رضی الله عنهم داسې حمایت کوو څنګه چه د خپل خان او خپلو خلقو کوو. قریشو چه دا معاهده واوریده نو نورې سختئی نی شروع کړې. اوس نبی کریم ﷺ صحابه کرامو ته حکم اوکړو چه مدینې طرف ته هجرت اوکړنی دا دویمه فتنه وه کومې چه نبی کریم ﷺ او صحابه کرام د مکې نه اوویستل. هم دا څیز الله تعالی په قرآن کښې ظاهر اوفرمانیلو چه دې کافرانو سره جنګ اوکړنی تردې چه دا فتنې ختمې شی او دین خالص د الله تعالی روان شی. دعروه بن زبیر رضی الله عنه نه روایت دې چه دا خط عروه رضی الله عنه عبدالملك بن مروان ته لیکلې وو. والله اعلم.

**(الحمدلله)**

دنهمې سپارې
تفسیر ختم شو.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَاعْلَمُوْٓا | اَنَّمَا | غَنِمْتُمْ | مِّنْ شَیْءٍ | فَاَنَّ | لِلّٰهِ |
| اوپوهه شئ! | چې بیشکه | کوم | مال دغنیمت چې اغستې دې تاسو | ادیوڅیزنه | انوبیشکه چې | الله لره ده |

(په دې خبره) پوهه شئ که کوم څیز تاسو بطور غنیمت حاصل کړې دې انو د الله ﷻ اود هغه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| خُمُسَهٗ | وَلِلرَّسُوْلِ | وَلِذِی الْقُرْبٰی | وَالْیَتٰمٰی | وَالْمَسٰکِیْنِ |
| پنځمه حصه دهغې | اود رسول ده | اورشته دارانو لره ده | اویتیمانو | اومسکینانو |

د رسول اود رشته دارانواو یتیمانو او مسکینانو او د مسافرو دپاره د هغې (مال غنیمت)

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَابْنِ السَّبِیْلِ | اِنْ | کُنْتُمْ | اٰمَنْتُمْ | بِاللّٰهِ | وَمَآ |
| اومسافرو لره ده | اکه چرې | اې تاسو | چې ایمان مو راوړې وی | په الله باندې | اوپه هغه څیز |

پنځمه حصه ده اکه تاسوایمان راوړئی وی په الله ﷻ اوپه هغه (کتاب) چې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَنْزَلْنَا | عَلٰی عَبْدِنَا | یَوْمَ الْفُرْقَانِ | یَوْمَ | الْتَقَی |
| چې نازل کړې وزمونږ | په بنده خپل باندې | په ورځ دفیصلې | هغه ورځ | اچې مخامخ شوې |

مونږ د فیصلې په ورځ باندې په خپل بنده نازل کړې دې (یعنی ورځ د جنګ بدر) په کومه ورځ چه یوبل سره

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الْجَمْعٰنِ | وَاللّٰهُ | عَلٰی کُلِّ شَیْءٍ | قَدِیْرٌ ۝ | |
| ادواړه ډلې | اوالله | په هرڅیز باندې | قادردې | |

دوه ډلې (په میدان جنګ کښې) مخامخ شوې او الله ﷻ په هرڅیز قادر دې

قوله تعالی:: فَاَنَّ لِلّٰهِ خُمُسَهٗ

**د مال غنیمت تقسیم د هغې حصې اوحقدارکسان:-** الله ﷻ دلته دمال غنیمت تقسیم بیانوی چه هغه په خاص توګه د دې امت د پاره حلال کړې شوې دې. د دې نه وړاندې په نوروامتونوباندې دا حرام وو. غنیمت هغه مال دې چه په کافرانودحملې او غلبې کولونه پس حاصلیږی.اوفيء هغه مال دې چه بغیرد جنګ جګړې نه په لاس راشی. مثلا هغوی سره صلح اوکړی او څه مال په همداسې توګه وصول کړی یا هغه مال دکوم چه وارث نه وی،یا دجزیه خراج وغیره مال وی.د امام شافعی اونوروسلفو اوخلفو علماؤ رحمة الله علیهم اجمعین د یوې ډلې هم دغه خیال دې. خو بعضې علماء د فيء اطلاق په غنیمت او د غنیمت په فيء کوی.د دې دپاره د قتاده رحمه الله قول دې چه په دې آیت دسورة حشر دا آیت﴿ مَآاَفَاءَالله﴾ منسوخ شوې دې. په دې وجه به د غنیمت د مال د پنځوحصونه څلور حصې مجاهدینوته ملاویږی او یوه حصه به هغوی ته ملاویږی د چا ذکر چه په دې آیت کښې شویدې.(یعنې رسول الله ﷺ، قرابت دار، یتیمان، مسکینان اومسافرآن خلق) خودا قول د قبلولو قابل نه دې. ځکه چه دا آیت د جنګ بدرنه پس نازل شوې دې او هغه آیت د "بنونضیر" باره کښې نازل شوې دې. اوعلماء سیرو المغازی(تاریخ دانانو) کښې یوته هم د دې باره کښې اختلاف نشته چه دبنونضیر قصه دجنګ بدرنه پس ده اونه په دې کښې د څه شك شبهې څه ګنجائش شته خوچه کوم خلق په فيء او غنیمت کښې فرق کوی نو هغوی وائی چه هغه آیت خود فيء باره کښې نازل شوې دې اودا د غنیمت باره کښې. اوڅه خلق فيء او غنیمت د امام په رائې باندې موقوف ساتی. چه څنګه د هغه مرضی وی هم داسې دې کوی.دغه شان په دواړو آیاتونو (د حشر آیت او د تخمیس ایت) کښې تطبیق کیږی. والله اعلم.

په ايت کښې بيان دي چه خمس يعنې پنځمه حصه د غنيمت د مال نه ويستل پکار دي. که هغه کم وي که زيات که ستن او تارولې نه وي. خالق د مخلوقاتو فرمائي چه څوك خيانت کوي هغه به دا د قيامت په ورځ پيش کوي. او هريوته به د هغه د پوره عمل بدله ملاويږي په چا باندې به ظلم نه شي کولې. فرمائي چه په خمس کښې به رباني حصه په کعبه کښې داخلولې شي. حضرت ابو العاليه رياحي رحمه الله فرمائي چه د غنيمت مال به رسول الله ﷺ پنځه حصې کولو څلور خو به په مجاهدينو کښې تقسيم کولې شوې اود پنځمې نه به حضور ﷺ موټې ډکولو او هغه به ئې د کعبې حصه کښې ورداخلولو بيا چه به کوم بچ شو نو هغه به ئې پنځه حصې کولو يوه د رسول الله ﷺ، يوه د قرابت دارو، يوه د يتيمانو، يوه د مسکينانو اويوه د مسافرانو. دا هم وئيلې شوې دي چه دلته د الله ﷻ د حصې نوم صرف د تبرك د پاره دې. دا لکه درسول الله ﷺ د حصې دبيانولو شروع ده.د ابن عباس رضي الله عنه بيان دې چه کله به حضور ﷺ چرته لښکرليږلواو دغنيمت مال به ملاؤشو نو حضور ﷺ به د دې پنځه حصې کولې او بيا به ئې د پنځمې حصې پنځه حصې کولې. بيا نبي کريم ﷺ دغه آيت تلاوت اوفرمائيلو. نودا فرمان چه ﴿فَأَنَّ لِلَّهِ خُمُسَهُ﴾ دا صرف د کلام شروع کولودپاره دې چه د الله ﷻ اود هغه د رسول ﷺ هم يوه حصه ده[1]د دې تائيد بيهقي د دې صحيح سند والا حديث شريف نه هم کيږي. يو صحابي رضي الله عنه د حضور ﷺ نه په وادي القرى کښې تپوس اوکړوچه يارسول الله ﷺ! دغنيمت باره کښې تاسوڅه ارشادفرمائې؟ نوحضور ﷺ اوفرمائيل چه په دې کښې پنځمه حصه د الله ﷻ دپاره ده او څلور حصې د لښکريانود پاره. نو هغه تپوس اوکړو چه په دې کښې د چا د پاره زياتي حصه نشته؟ حضور ﷺ اوفرمائيل هيڅ کله هم نه، تردې پورې چه ته کله د خپل بدن نه يو غشې راوباسې نو ددغه غشي هم ته حق دار نه ئې. تر خپل مسلمان رور به[2] حضرت حسن رضي الله عنه د خپل مال د پنځمه حصه وصيت اوکړو او وئې فرمائيل چه آيا زه د خان د پاره په دې حصه باندې رضامند نه شم کومه چه الله ﷻ د خپل ځان د پاره خوښه کړې ده. حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائي چه دغنيمت مال به پنځه حصې برابر کيدلې نوڅلورحصې خويه هم دغه لښکريانوته ملاويدلې کوم چه به په دې جنګ کښې شريك وو اوبيا به د پنځمې حصې څلور جوړيدلې نو څلورمه به د الله ﷻ اود هغه د رسول ﷺ بيا به دا حصه د حضور ﷺ په خپلوانو کښې تقسيم کولې شوه. او رسول کريم ﷺ د خمس نه هيڅ نه وو اخستې. حضرت عبدالله بن بريده رضي الله عنه فرمائي چه د الله ﷻ حصه به د هغه د نبي ﷺ وه اوچه کومه به دحضور ﷺ حصه وه نو هغه به د بيبيانو حصه وه. عطاء بن ابي رباح رحمه الله فرمائي د الله ﷻ اود هغه د رسول ﷺ چه کومه حصه ده هغه صرف هم د رسول الله ﷺ ده. اختيار دې ورته چه په کوم څيز کښې غواړي لګولې شي.

**مال غنيمت کښې خيانت حرام دې::** مقدام بن معدي کرب، حضرت عباده بن صامت، حضرت ابو درداء اوحضرت حارث بن معاويه کندي رضي الله عنهم يوځائ ناست وو.يدې کښې درسول الله ﷺ د احاديثو ذکر اوشو نو ابودرداء رضي الله عنه حضرت عباده بن صامت رضي الله عنه ته اووئيل چه په فلانکي فلانکي غزا کښې رسول الله ﷺ دخمس باره کښې څه ارشاد فرمائيلې وو؟ هغه اووئيل چه حضور ﷺ په يوه غزوه کښې دخمس د يواوښ پسې شاته صحابه کرامو رضي الله عنهم ته مونځ ورکړو نودسلام نه پس اودريدو اويوڅو ويښته ئې پخپله چونډنې(ګوتو)کښې نيولوسره اوفرمائيل چه داويښته د هغه اوښ دې کوم چه ستاسو په مال غنيمت کښې دې او زما په کښې هيڅ حصه نشته دې سوادپنځمې حصې نه..زما حصه خو تاسو سره صرف پنځمه ده او هغه هم تاسو ته واپس درکولې شي. نود ستنې او تار

---

[1] الطبرى:۵۴۸/۱۳.

[2] بيهقى:۳۲۴/۶وسنده صحيح، مسندابى يعلى:۷۱۷۹، مجمع الزوائد:۴۸/۱.

پوري ورو کي او لوني خيز راوزسوئي خيانت مه کوئي. خيانت کول شرم دي اود خيانت کونکود پاره په دواړه جهانونو کښي اور دي.لري خلقوسره اونيزدي خلقوسره دالله ﷻ په لارکښي جهاد کوئي.په شرعي کارونوکښي د يوملامت کونکي د ملامتيا هيڅ خيال مه کوئي. په وطن کښي او په سفرکښي د الله ﷻ مقررکړي شوی حدونه جاري کوئي اود الله ﷻ په لاره کښي جهاد کوئي. جهاد د جنت د لويودروازو نه يوه دروازه ده. هم د دي جهاد په وجه الله ﷻ د غم دردنه خلاصي ورکوی (۱) داحديث حسن دي او ډير اعلي دي. په صحاح سته کښي په دي روايت‌سره مروی نه دي خو هم د مسند په دونم روايت کښي په بل سند سره د خمس اوخيانت ذکر مروی دي(۲) په ابوداؤد او نسائي کښي هم دا حديث شريف مختصراً مروی دي(۳) د دي حصي نه به رسول الله ﷺ بعضي څيزونه د خپل ذات مبارك د پاره هم خاص فرمائيل لکه وينځه غلام توره او اس وغيره.لکه څنګه چه محمد بن سيرين رحمه الله او عامر شعبي رحمه الله اواکثرو علماؤ فرمائيلي دی. په ترمذي شريف کښي دی چه ذوالفقار نومي توره د بدر د ورځي د نفل نه وه کومه چه حضور ﷺ سره وه. هم د دي پاره کښي ئی د احد په ورځ په خوب کښي ليدلي وه(۴) حضرت عائشه رضي الله عنها فرماني حضرت صفيه رضي الله عنها هم داشان غنيمت کښي راغلي وه(۵) اوپه ابوداؤد وغيره کښي دی چه حضرت يزيد بن عبدالله رضي الله عنه وائي چه مونږ په باړې کښي ناست وو چه يو صاحب تشريف راوړلو اود هغه په لاس کښي د څرمني يو ټکړه وه مونږ هغه اولوستله نو په هغي باندي ليکلي وو چه دا د رسول الله ﷺ د طرف نه د بنوزبير بن اقيش طرف ته که ته د الله ﷻ د يووالي اود رسول الله ﷺ د رسالت ګواهي ورکړي، مونځ قائم کړي او زکوة ورکړي اودغنيمت د مال نه خمس ادا کوي اود نبي ﷺ حصه او خالص حصه اداکوي نو ته د الله ﷻ اود هغه د رسول ﷺ نه په امن کښي يئي. نو مونږ تپوس اوکړو چه تاله دا چا اوليکل؟ هغه وئيل رسول الله ﷺ(۶) نود دي صحيح حديثونو دلالت او ثبوت په دي خبره دي په دي وجه اکثرو بزرګانو دا د حضور ﷺ په خواصوکښي شميرلي دی. صلوت الله، وسلامه عليه.اوځه خلق وائي چه په خمس کښي چه امام وخت د مسلمانانود مصلحت مطابق څه غواړي کولي شي. لکه څنګه چه په مال فی کښي هغه ته اختيار دي. زمونږ شيخ علامه امام ابن تيميه رحمه الله فرماني چه هم دغه قول د امام مالك رحمه الله دي اود اکثرو سلفو دي اوهم دا د ټولونه زيات صحيح دي.

**د نبي کريم ﷺ د وفات نه پس د خمس حصه ساقطه شوې ده**

**مسلک حنفي:-** دامام ابوحنيفه رحمه الله مسلک دا دي چه د نبي کريم ﷺ د وفات نه پس د خمس حصه ساقطه شوه ځکه چه د دوی دا حصه د پيغمبر په حيثيت د دوی دپاره وه او چونکه د دوی نه پس بل پيغمبر نشته نو د خمس حصه ساقطه شوه (تفسير مظهری ۲۲۱۴).

کله چه دا ثابته شوه او معلومه شوه نو دا خيال هم ساتل پکار دی چه خمس کومه د حضور ﷺ حصه وه نواوس د رسول الله ﷺ نه پس هغي سره څه اوکړو. نو بعضي وائي چه اوس دا حصه د امام وخت يعني د مسلمانانو د خليفه ده. د حضرت ابوبکر رضي الله عنه حضرت علي رضي الله عنه حضرت قتاده رحمه الله اود يوي ډلي هم دغه قول دي اوپه دي باره کښي يو مرفوع حديث هم راغلي دي. او څه خلق وائي چه دا به د مسلمانانو په

(۱) احمد:۳۱۶/۵،مجمع الزوائد:۳۳۸/۵. (مسندامام احمد)
(۲) احمد:۱۸۴/۲، ابوداؤد كتاب الجهاد باب فى فداءالاسيربالمال:۲۶۹۴، وهوحسن، نسائى:۳۷۱۸، دلائل النبوة: ۱۹۵/۵.
(۳) ابوداؤد كتاب الجهاد باب فى الامام يستامربشئ من الفئ لنفسه:۲۷۵۵وسنده صحيح.
(۴) ترمذى كتاب السيرباب فى النفل تحت حديث:۱۵۶۱، وهوصحيح، ابن ماجه: ۲۸۰۸، احمد:۲۷۱/۱.
(۵) ابوداؤد كتاب الخراج باب ماجاء فى سهم الصفى:۲۹۹۴.
(۶) ابوداؤد كتاب الخراج باب ماجاء فى سهم الصفى:۲۹۹۴وسنده صحيح، نسائى:۴۱۵۱.

مصلحت كښې خرچ كيږي. او يو قول دا دې چه دا به هم د باقي په نور قسمونو كښې خرچ كيږي يعني خپلوان، يتيمان مسكينان او مسافرو ته به وركولې شي. د عراق والا د يوې ډلې هم دا قول دې. او ونيلې شوې دى چه د خمس دا پنځمه حصه به ټوله په ټوله د خپلوانو وى. عبدالله بن محمد بن علي رحمه الله اوعلى بن حسين رضي الله عنه هم دغه قول دې چه زمونږ حق دې. تپوس اوكړې شو چه په آيت كښې د يتيمانومسكينانو هم ذكر دې نو امام على رضي الله عنه اوفرمائيل دې نه مراد هم زمونږ يتيمان او مسكينان دى.د امام حسن بن محمد بن حنيفه رحمه الله نه ددې آيت ﴿وَاعْلَمُوا أَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِنْ شَيْءٍ فَأَنَّ لِلَّهِ خُمُسَهُ وَلِلرَّسُولِ﴾ باره كښې سوال اوكړې شو نو فرمائي چه د كلام شروع داسې شوې ده ګنې د دنيا او آخرت هر څه هم د الله ﷻ دى. بيا په دې دواړو حصو كښې د نبى كريم ﷺ نه پس څه اوشو په دې كښې اختلاف دې بعضې وائي دحضور ﷺ حصه به د هغوى ﷺ خليفه ته ملاويږي. بعضې وائي چه د حضور ﷺ خپلوانوته، بعضې وائي چه دخليفه خپلوانوته.دهغوى په رائې كښې دا دواړه حصې دى د اسونو او وسلو په كاركښې اولګولې شى.هم دغه شان په صديقى او فاروقى خلافت كښې هم كيدل.ابراهيم رحمه الله وائي حضرت صديق اكبر رضي الله عنه او فاروق اعظم رضي الله عنه به د حضور ﷺ دا حصه دجهاد په كاركښې لګوله. تپوس اوكړې شو چه حضرت على رضي الله عنه به ددې باره كښې څه كول؟فرمائي چه هغه د دې باره كښې ددې ټولو نه سخت وو.

### د غريبانانو بنو هاشمو دپاره په خمس كښې اوس هم حصه شته

**مسلک حنفى:** په مال غنيمت كښې د نبى كريم ﷺ درشته دارانو دپاره كوم چه بنو هاشم او بنومطلب دى. په دوى كښې چه كوم غريبيانان وى نو اوس هم د هغوى حصه باقي ده او امام به په خمس كښې هغوى ته وركوى دا د احنافو مسلک دې البته كوم چه مالداران دى نو د احنافو په نيز په خمس كښې د هغوى حصه نشته (ماخوذ بتغير ازمعارف القران ۴/۲۱۴/۲)۔

د اكثرو علماؤ دا قول دې. د ذوى القربى كومه حصه چه د بنوهاشم او بنوعبدالمطلب وه په دې وجه چه د عبدالمطلب اولاد او بنوهاشم اولاد په جاهليت كښې اود اسلام په شروع كښې موافقت اوكړو او هم دوى سره هغوى په وادنى كښې قيدكيدل منظور كړل. ځكه چه رسول الله ﷺ ته تكليف رسولو باندې دا خلق غصه شوې وو اود حضور ﷺ په حمايت كښې وو. په دوى كښې مسلمانان خود الله ﷻ اود هغه د رسول ﷺ د پاره او كافران د خاندانى طرفدارئى د پاره اود رشتوپه وجه د حمايت د پاره اود رسول الله ﷺ د تره ابوطالب دتابعدارئى د پاره. او بنو عبدشمس او بنو نوفل داهم لكه د رسول الله ﷺ د تره خامن وو خو هغوى د رسول الله ﷺ په موافقت كښې نه وو بلكه د هغوى خلاف وو او هغوى جدا كړې وو. هغوى سره جنګيدل او ونيل به ئې چه قريش او ټول قبائل د هغه خلاف دى. په دې وجه ابوطالب په خپله قصيده لاميه كښې د هغوى ډير خرابوالې كړې دې ځكه چه دا نيزدې خپلوان وو. ونيلى دى چه دوى ته به ډير زر د الله ﷻ د طرف نه د دوى د شرارت پوره بدله ملاويږى. دې بيوقوفانو سره د خپل خاندان نه د كيدو اويوې وينې كيدو سره زمونږ نه سترګې واړولې. په يوه موقعه حضرت جبير بن مطعم ابن عدى بن نوفل حضرت عثمان بن عفان بن ابى العاص ابن اميه بن عبدشمس رسول الله ﷺ له لاړل اوشكايت ئې اوكړو چه تاسو د خيبر د خمس نه بنوعبدالمطلب ته خو وركړل او مونږ دې پريخودو سره د دې چه په خپلوئى كښې مونږ او هغوى بالكل يوشان برابر يو. نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه واورئى بنوعبدالمطلب او بنوهاشم بالكل يو شې دې[1] په بعضې روايت كښې داهم دى چه هغوى خوزمانه نه په جاهليت كښې جداوالې كړې اونه په اسلام كښې[2] دا قول خود جمهورو علماؤ دې چه

[1] صحيح بخارى كتاب فرض الخمس باب ومن الدليل على ان الخمس للامام: ۳۱۴۰، السنن الكبرى للبيهقى: ۶/۳۶۵، احمد: ۴/۸۱، مسندابى يعلى: ۷۳۹۹.

[2] ابوداؤد كتاب الخراج باب فى بيان مواضع قسم الخمس...: ۲۹۸۰، وهوصحيح، نسائى: ۴۱۴۲.



دا بنوهاشم او بنوعبدالمطلب دی خو بعضې وائی چه دا صرف بنوهاشم دی. د مجاهد رحمه الله قول دې الله ﷻ ته علم وو چه بنوهاشم کښې فقیران دی نو صدقې په ځائ دهغوی حصه په مال غنیمت کښې مقرر کړه. هم دا د رسول الله ﷺ هغه خپلوان دی په کومو چه صدقه حرام ده. د حضرت علی بن حسین رضي الله عنه نه هم داسې روایت دې. بعضې وائی چه دا ټول قریش دی. د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه تپوس اوکړې شو چه ذوی القربی څوك دی؟ نو هغوی جواب ورکړو چه مونږ خو وایو چه هم مونږ یو خو زمونږ قوم نه منی او وائی چه ټول قریش دی[1] په بعضې روایتونوکښې صرف هم ړومبنئی جمله ده د دویمې جملې راوی ابومعشر مجیح بن عبدالرحمن مدنی په روایت کښې هم دا جمله ده ټول وائی چه دا ټول قریش دی. په دې کښې ضعف هم شته. په ابن ابی حاتم کښې دی رسول الله ﷺ فرمائیلی ستاسو د پاره خو ما دخلقودخیرو نه مخ اړولې اود خمس پنځمه حصه کافی ده. ([2]) داحدیث حسن دې اود دې راوی ابراهیم بن مهدی ته امام ابوحاتم ثقه وائی خو یحیی بن معین وائی چه دې منکر روایتونه راوړی. والله اعلم.

**په خمس کښې دیتیم اومسکین حصه:** :په آیت کښې دیتیمانوذکردې یعنی دمسلمانانو بې پلاره بچو بیابعضې خووائی چه یتیموالی سره فقیری هم وی نو هغوی حقدار دی اوبعضې وائی چه هر امیر فقیر یتیم د پاره دا الفاظ دی. د مساکین نه مراد هغه محتاج دی چه هغوی سره دومره نه وی چه د هغوی فقیری اوحاجت پوره کړی اود هغوی دپاره کافی شی. ابن سبیل هغه مسافر دې چه د دومره حده پورې د وطن نه وتلې وی چرته په رسیدو چه هغه ته قصر مونځ کول جائز شی اود سفر خرچ هغه سره پوره نه وی. د دې تفسیر د سورت براءت د آیت ﴿انما الصدقت﴾ په تفسیرکښې به ان شاء الله ﷻ راځی. زمونږ په الله ﷻ باندې یقین دې او هم د هغه نه مونږ امداد طلب کوو.

بیا فرمائی که ستاسو په الله ﷻ اود هغه په نازل کړې شوی وحی باندې ایمان وی نو چه څه هغه فرمائی نو په ځائ راوړئی یعنی د غنیمت د مال نه پنځمه حصه جدا کوئې. په بخاری اومسلم شریف کښې دی چه د عبدالقیس وفد ته رسول الله ﷺ فرمائیلی وو زه تاسو ته د څلورو خبرو حکم درکوم او د څلورونه مو منع کوم. زه تاسو ته په الله ﷻ باندې د ایمان راوړلو حکم درکوم. پوهیږئی چه په الله ﷻ باندې ایمان راوړل څه دی؟ گواهی ورکول چه دهغه نه بغیرد عبادت لائق څوك نشته او حضرت محمد ﷺ د الله ﷻ رسول دې. مونځ په پابندئی سره ادا کوئې زکوة ورکوئې او د مال غنیمت نه خمس ورکوئې. ([3]) نود خمس ورکول هم په ایمان کښې داخل دی.

**دجنگ بدرتاریخ او دیوم الفرقان مطلب** ::حضرت امام بخاری رحمه الله په خپل کتاب بخاری شریف کښې باب تړلې دې چه د خمس ادا کول په ایمان کښې دی بیا نې دا حدیث ذکر کړې دې او مونږ د بخاری شریف په شرح کښې د دې پوره مطلب واضح کړې دې. ولله الحمد والمنه. بیا الله ﷻ یو احسان او انعام بیان فرمائی چه هغه په حق او باطل کښې فرق اوکړو. خپل دین ئی غالب کړو اودخپل نبی ﷺ اود هغوی ﷺ د لښکرو امداد ئی اوفرمائیلو اوپه جنګ بدرکښې هغوی ته غلبه ورکړه.د ایمان کلمه د کفر په کلمه باندې خوره شوه. نود یوم الفرقان نه مراد هم د بدر ورځ ده په کومه کښې چه د حق او باطل فرق اوشو([4]) د ډیرو بزرګانونه د دې هم دغه تفسیر مروی دې([5]) هم دغه د ټولونه ړومبې غزوه وه.

[1] صحیح مسلم کتاب الجهاد باب النساء الغازیات برضخ لهن ولا یسهم...:۱۸۱۲،
[2] المعجم الکبیر:۱۱۵٤۳، بتصرف یسیر
[3] صحیح بخاری کتاب الایمان باب اداء الخمس من الایمان: ۵۳، صحیح مسلم:۷۱، ابوداؤد:۳٦۹۲، ترمذی:۲٦۱۱، احمد:۲۲۸/۱.
[4] حاکم:۲۳/۳عن ابن عباس رضي الله عنه.
[5] الطبری:۵٦۱/۱۳.

مشرکان د عتبه بن ربیعه ماتحتان وو، د جمعه په ورځ په اوولسم یا نورلسم رمضان دا جنګ شوی وو. د رسول الله ﷺ صحابه کرام درې سوو اولسونه لږ شان زیات وو اود مشرکانو شمیر د نهه سوو نه نږ زرو پورې وو. سره د دې الله ﷻ کافرانو ته ماتې ورکړه. د اویاؤ نه څه زیات خودوی مړه شو اود هم دومره قید کړې شو. مستدرك حاکم کښې دی ابن مسعود ﷺ فرمائي چه لیلة القدر د میاشتې په باقي یولسو شپو کښې اولټوئې ځکه چه د دې په سحر د بدر د جنګ ورځ وه. (۱) حسن بن علی ﷺ فرمائي لیلة الفرقان په کومه ورځ چه د دواړو ډلو په مینځ کښې سخت جنګ اینختې وود رمضان اوولسم وو داشپه هم د جمعه شپه وه. دعزوې او سیرت د کتابونو والا په تیز صحیح هم دغه دی.او یزید بن ابی جعود ﷫ چه د خپل وخت د مصری علاقې امام وو فرمائي چه د بدر ورځ د پیر ورځ وه خو بل چا د ده متابعت نه دی کړې اود جمهورو قول یقیناً د ده په قول باندې مقدم دی. والله اعلم

| |
|---|
| إِذْ أَنتُم |
| ا یاد کړئ کله چې ا وئ تاسو |
| ا په کوم وخت کښې الله ﷻ |
| بِالْعُدْوَةِ الدُّنْيَا وَهُم بِالْعُدْوَةِ الْقُصْوَىٰ |
| په غاړه دغر دلمنې ا نزدې په دې طرف ااو وو هغوئ ا په غاړه دغر دلمنې ا لرې په بل طرف ا |
| چه تاسو (مدینې منورې ته) نزدې طرف ته وئ او هغوی (کافران د مدینې منورې) لرې طرف ته وو |
| وَالرَّكْبُ أَسْفَلَ مِنكُمْ ۚ وَلَوْ تَوَاعَدتُّمْ لَاخْتَلَفْتُمْ |
| اوقافله ا ښکته وه ا ستاسو نه ا اوکه چرې اتاسو یو تر بله وعده کړې وې انو خامخا به مخالفت کړې وو تاسو |
| او (د تجارت) قافله ستاسو نه ښکته وه ا اوکه تاسو د یو بل سره (د ورانده نه د مقابلې) وعده کړې وه نو پ |
| فِي الْمِيعَادِ ۙ وَلَٰكِن لِّيَقْضِيَ اللَّهُ أَمْرًا |
| په وعده کښې الیکن جمع کړئ تاسوالله ا دپاره ددې چې پوره کړي ا الله ا هغه کار |
| په وعده کښې به مو اختلاف کړې وو اخو (الله ﷻ تاسو ناځاپه یو بل سره ملاؤ کړئ) چه الله ﷻ هغه |
| كَانَ مَفْعُولًا لِّيَهْلِكَ مَنْ هَلَكَ عَن بَيِّنَةٍ |
| چې ووهغه ا کیدونکې ا دپاره ددې چې هلاك شي ا هغه څوك ا چې هلاك کیږي ا په روښانه دلیل سره |
| پوره کړي کوم چه (دالله په علم کښې) پوره کیدونکې وو. هغه دا چه څوك هلاكیږي هغه د ښکاره دلیل |
| وَيَحْيَىٰ مَنْ حَيَّ عَن بَيِّنَةٍ ۗ وَإِنَّ اللَّهَ |
| اوژوندی پاتې شي ا هغه څوك ا چې ژوندی پاتې کیږي ا په روښانه دلیل سره ا اوبې شکه چې الله |
| نه پس هلاک شي او څوک ژوندې پاتې کیږي هغه د ښکاره دلیل نه پس ژوندې پاتې شي ا او الله تعالی |
| لَسَمِيعٌ عَلِيمٌ ۝ |
| خامخا اوریدونکې دې ا اوپوهه دې ا |
| (دهر څه) اوریدونکې دې او (په هر څه) عالم دی ا |

(۱) حاکم: ۲۰/۳.

**قوله‌تعالی:: إِذْ أَنتُم بِالْعُدْوَةِ الدُّنْيَا**

**دبدرمعرکه، دابوسفیان‌ﷺ د قافلې اودجنګ دمقام تفصیل:-** فرمائی تاسوپه هغه ورځ وادی قریب کښې وې کومه چه مدینې سره نیزدې ده او مشرکان خلق د مدینې نه لرې په وادنی کښې وو اوابوسفیان اود هغه تجارتی قافله سره د سامانه لاندې طرف ته د دریاب طرف ته وه. که تاسو اوکافرانود اول نه د جنګ اراده کوله نوبه تاسوکښې به خامخا اختلاف پیدا کیدو چه جنګ په کوم ځای کښې اوکړو. اودا هم مطلب خودلې شوې دې که چرې تاسو خلق په خپل مینځ کښې د جنګ کولو دپاره تیار وې اوبیا تاسوته د هغوی د زیات شمیر اود هغوی د سازوسامان پته لګیدلې وه نو ډیرممکن وو چه حوصلې مو ښکته شوې وې. ددې دپاره الله ﷻ بغیرد پروګرام مقررولو دواړه ډلې یوځای کړې چه د الله ﷻ دااراده پوره شی چه اسلام او مسلمانان دې اوچت وی او شرك او مشرکان دې ښکته وی نو چه څه کول وو الله ﷻ اوکړه.نودکعب بن مالك‌ﷺ په حدیث کښې دی چه حضورﷺ او مسلمانان خوصرف د قافلې په اراده راوتلې وو الله ﷻ دښمن سره مخامخ کړل بغیرد مقررولو او بغیرد جنګی تیارنې([1]) ابوسفیان د شام د ملك نه قافله راروانه کړه،ابوجهل هغه د مسلمانانونه د بچ کولو د پاره د مکې نه اووتلو. د قافلې او لارې نه اووتل اودمسلمانانو او کافرانو جنګ اوشو. د دې نه وړاندې دواړه د یوبل نه ناخبره وو. یوبل نی خاص کر د اوبو اوړلو په وخت کښې اولیدل او یو بل ته نی علم اوشو.سیرت محمد بن اسحاق کښې دی چه حضورﷺ برابر په خپله اراده باندې روان وو صفراء مقام ته اورسیدو نو بسبس بن عمرو او عدی بن ابوالزغباء جهنی نی د ابوسفیان متعلق معلوماتوته اولیګل. دې دواړو د بدر په میدان کښې بطحاء ته په رسیدو باندې خپلې سورلنی په یوه غونډنی کینولې اود اوبو دپاره اووتل. په لار کښې نی دوه جینکنې خپل مینځ کښې په جنګ اولیدلې نو یوې بلې ته نی ونیل ته زما قرضه ولې نه ادا کوې؟ هغې ونیل دومره تیزی مه کوه صبا یا بل صبا به دلته قافله راځی زه به تاته خپل حق درکړم. مجدی بن عمرو په مینځ کښې اوونیل دارښتیا وائی هغه دې دواړو صحابه کرامو واوریدل خپل اوښان نی راښکل اودحضورﷺ په خدمت کښې حاضر شو اوخبر نی ورکړو.هلته ابوسفیان د خپلې قافلې نه وړاندې یوازې دلته راورسیدو او مجدی بن عمرو ته نی اوونیل په دې کوهی باندې تاڅوك لیدلی؟هغه اوونیل چه یو دوه سواره راغلې ووخپلې اوښې نی پدې غونډنی چو کړې اوخپلو مشکونو کښې نی اوبه ډکې کړې او لاړل. دې اوریدو سره هلته لاړو او پچې نی راواخستې او ماتې نی کړې نو په هغې کښې دکهجورو هډوکی اولیدل نو ونی ونیل والله دا دمدینې خلق دی.هم د هغه ځای نه خپلې قافلې ته واپس شو او لار نی بدله کړه اود سمندر غاړې طرف ته روان شو. کله چه هغه ته د دې طرف ته تسلی اوشوه نو هغه خپل قاصد قریشیانوته اولیګلو چه الله ﷻ ستاسو قافله مال او سړی بچ کړل تاسو واپس شنی. دې اوریدو سره ابوجهل اوونیل چه نه تردې راغلو نو بدر ته به خامخا ورځو. دلته به یو بازار لګیدلو هلته به مونږ درې ورځې حصاریږو او اوښ به حلالو، شرابونه به څکو او کبابونه به جوړوو دې د پاره چه په عربوکښې زمونږ مشهورتیا اوشی اوهرچاته زمونږ بهادری او نه ویریدل معلوم شی اوهغوی دهمیشه د پاره زمونږ نه ویریږی.خواخنس بن شریق اوونیل دبنوزهره خلقو الله ﷻ ستاسو مالونه بچ کړل تاسو له پکار دی چه اوس واپس لاړ شنی. د بنی زهره قبیلې خو د هغه خبره اومنله او بنوعدی هم بدر ته حاضر نشو. بدر ته په رسیدو باندې حضورﷺ حضرت علی‌ﷺ بن ابی طالب حضرت سعدبن ابی وقاص‌ﷺ اوحضرت زبیر بن عوام ﷺ د خبر راوړلو د پاره اولیګل او یو څو نور صحابه کرام ﷺ نی هم هغوی سره کړل. هغوی ته د بنو سعید بن عاص غلام او بنو حجاج غلام په کوهی باندې

---

[1]) الطبری:۵٦٦/۱۲.

ملاؤشو او دواړه ئې ګرفتارکړل اوحضورﷺ په خدمت کښې ئې حاضر کړل.هغه وخت حضورﷺ په مانځه وو نو صحابه کرامو ﷡ د هغه نه تپوسونه شروع کړل چه تاسو څوک ئې؟ هغوی وئيل د قريشو سقه اوبه راوړونکې يوهغوی مونږ د اوبود پاره راليګلي وو.دصحابه کرامو ﷡خيال ووچه د ابو سفيان سړی دی په دې وجه هغوی په دوی باندې سختی شروع کړه. چې ډير ئې اووهل نو هغوی اووئيل چه مونږ د ابوسفيان د قافلې يو نوهغوی پريخودل.حضورﷺ يو رکعت اوکړو او سلام ئې واړولو او وئې فرمائيل چه ترکومې هغوی رښتيا وئيل نو تاسو وهل او ټکول او چه کله هغوی دروغ اووئيل نو تاسو پريخودل، والله دوی رښتونی دی اود قريشو غلامان دی. ښه ده اوښايئې د قريشو لښکر کوم ځائ دې؟ هغوی اووئيل د وادی قصوی دې طرف ته د دې غونډئ شاته. حضورﷺ اوفرمائيل هغوی په شميرکښې څومره دی؟ هغوی وئيل ډير. حضورﷺ اوفرمائيل آخرڅومره؟هغوی وئيل چه شمير خو مونږ ته معلوم نه دې نوحضورﷺ اوفرمائيل چه ښه ده دا خودلې شئې چه هره ورځ څومره اوښان حلالوی. هغوی اووئيل يوه ورځ نهه او يوه ورځ لس. نو حضورﷺ اوفرمائيل چه بيا خو هغوی د نهه سوو نه تر زرو پورې دی. بيا حضورﷺ د دې خبرې معلومات اوکړو چه په دوی کښې د قريشو سرداران څوک څوک دی؟ هغوی جواب ورکړو عتبه بن ربيعه، شيبه بن ربيعه، ابوالبختری بن هشام، حکيم بن حزام، نوفل بن خويلد، حارث بن عامر بن نوفل، طعيمه بن عدی، نضر بن حارث، زمعه بن اسود، ابوجهل، اميه بن خلف، نبيه بن حجاج، منبه بن حجاج، سهل بن عمرو او عمرو بن عبدود. دې اوريدو سره حضورﷺ صحابه کرامو ﷡ ته او فرمائيل واخلئې مکې د خپل ځيګر ټکړې تاسو ته دروا چولې[1]

**دبدرپه ميدان کښې د نبی کريم ﷺ د اوسيدو ځائې:**:دبدر په ورځ چه کله د دواړو ډلومقابله شروع شوه نوحضرت سعد بن معاذ﷛ رسول اللهﷺ ته عرض اوکړو که چرې تاسو اجازت اوکړئې نو مونږ به ستاسو دپاره يوه کوډئې جوړه کړوتاسو به هلته کيننئې او مونږ به خپل ځناور دلته کينوو اود جنګ ميدان ته به وراودانګو که چرې فتح اوشوه نو الحمدلله هم دغه مطلب دې ګنی تاسو زمونږ په ځناورو باندې سواره شئې او خپل ځان سره ئې زمونږ د قوم هغه حضراتوته بوځئې چه په مدينه منوره کښې دی هغوی زمونږ نه زيات ستاسو سره مينه کوی. هغوی ته معلومه نه وه چه جنګ کيدونکې دې ګنی. هغوی به هيڅ کله هم ستاسو ملګرتيا پريخودې نه وه ستاسو د امداد د پاره به تاسو سره يوځائ راوتلې وو. حضور ﷺ د هغوی د دې مشورې قدر اوکړو او هغوی ته ئې دعا اوکړه او په دې ډيره کښې حضورﷺ حصارشو.حضورﷺ سره صرف يو ابوبکر﷛ وو بل څوک نه وو سحر کيدوسره د کافرانو لښکر د غونډئې شاته راتلونکی ښکاره شو د هغوی په کتو باندې حضورﷺ الله ﷻ نه دعا اوکړه يا الله د دوی د فخر او غرور سره تاسو د جنګيدلو د پاره اوستا رسول دروغ ګڼړلو د پاره راروان دی يا الله نه دوی خوار او ذليل کړې. ددې آيت د آخری جملې تفسير سيرة ابن اسحاق کښې دا دې چه دا د دې د پاره چه کفر کونکی د الله ﷻ دليل اووينی چه په کفر باندې وی او د ايمان خاوندان هم په دليل سره ايمان راوړی[2]يعنی بغير دتياری او بغيرد شرط مقرر کولو الله ﷻ مؤمنان او کافران ناڅاپی يوځائ مخامخ کړل چه حق له په باطل باندې غلبه ورکړی او حق بالکل ښکاره کړی داسې چه چاته هيڅ شک شبه پاتې نه شی. اوس که څوک په کفر دی نو هغوی سره د بصيرته په کفر کښې وی او چه کوم ايمان والا دليل اووينی نو ايماندار جوړشی. هم ايمان د زړونو ژوند دې او کفر اصلی هلاکت دې لکه چه په قرآن کريم کښې ارشاد دې ﴿أَوَمَن كَانَ مَيْتًا فَأَحْيَيْنَٰهُ﴾ هغه چه کوم مړه وو هغه مونږ ژوندی کړل اود هغوی د پاره مو نور جوړکړو. او په دې رڼا باندې هغوی په خلقو کښې ګرځی راګرځی. د تهمت په قصه کښې

---

[1] دلائل النبوة للبيهقي:۳/۴۲-۴۳، دَ دې اصل صحيح مسلم:۱۷۷۹، ابوداؤد:۲۶۸۱

[2] الطبری: ۵۶۸/۱۳.

دحضرت عائشه رضي الله عنها الفاظ دا دی چه بیا خوك هلاك کیدل نو هغه هلاك شو یعنی په بهتان کښې حصه واخسته. الله ﷻ ستاسو تضرع، زاری او ستاسو دعا استغفار او مناجات اوریدونکي دي هغه ښه پوهیږی چه هم تاسو اهل حق یئ هم تاسو د امداد حقدار یئ او تاسو د دې قابل یئ چه په کافرانو او مشرکانو باندې غلبه درکړې شي.

إِذْ يُرِيكَهُمُ اللَّهُ فِي مَنَامِكَ قَلِيلًا ۖ

اکله چې ا اوښودل تاته داکافران الله ا په خوب ستا کښې ا لږ

ا هغه وخت یاد کړه چه الله ﷻ تا ته په خوب کښې هغوی

وَلَوْ أَرَاكَهُمْ كَثِيرًا لَّفَشِلْتُمْ وَلَتَنَازَعْتُمْ

اوکه چرې ا هغه ښودلي وې تاته هغوئ ا ډیر ا نو بې زړه شوی به وئ تاسو ا او خامخا به په جګړه شوی وئ تاسو

(کافران لږ ښکاره کړل ا او که تا ته ئې دوی (په خوب کښې) ډیر ښودلي وې نو تاسو به بزدله شوې وئ او

فِي الْأَمْرِ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ سَلَّمَ ۗ إِنَّهُ عَلِيمٌ بِذَاتِ

په کار دجنګ کښې ا لیکن الله ا سالم اوساتئ دجګړې نه ا بیشکه چې هغه ا خبردار دې ا په پټو خبرو

او (د جهاد په کولو کښې به) مو اختلاف کړې وو. ا لیکن الله ﷻ تاسو (د دې نه) بچ کړئ ا بیشکه الله

الصُّدُورِ ﴿٤٣﴾ وَإِذْ يُرِيكُمُوهُمْ إِذِ الْتَقَيْتُمْ

دسینو اوکله چې ا الله اوښودل تاسو ته هغوئ ا په هغه وخت کښې ا چې مخامخ شوئ تاسو

د زړونو په پټو رازونو (هم) عالم دې ا او یاد کړئ چه (د بدر په غزوه کښې) کله تاسو دوی (کافرانو سره) ملاو

فِي أَعْيُنِكُمْ قَلِيلًا وَيُقَلِّلُكُمْ فِي أَعْيُنِهِمْ

په سترګو ستاسو کښې ا لږ ا او لږ ئې ښکاره کړئ تاسو ا په سترګو د هغوئ کښې ا

شوئ نو هغوی ئې ستاسو په سترګو کښې کم ښکاره کړل او تاسو ئې د هغوی په سترګو کښې کم ښکاره کړئ

لِيَقْضِيَ اللَّهُ أَمْرًا كَانَ مَفْعُولًا ۗ وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ

دپاره ددې چې پوره کړې الله ا هغه کار ا چې وؤ ا کیدونکې ا او خاص الله ته ا واپس کیږی ا

د دې دپاره چه الله ﷻ هغه کار اوکړی کوم چه کیدونکې وو ا او ټول کارونه الله ﷻ طرف ته واپس

الْأُمُورُ ﴿٤٤﴾

ټول کارونه ا

کیږی ا

قوله تعالى: إِذْ يُرِيكَهُمُ اللَّهُ فِي مَنَامِكَ قَلِيلًا ۖ

په جنګ بدر کښې دمسلمانانو او کافرانو شمیر- الله ﷻ خپل نبی ﷺ ته په خوب کښې د مشرکانو شمیر ډیر کم خودلې وو. حضور ﷺ خپلو صحابه کرامو رضي الله عنهم ته ذکر اوکړو نو دا ځیز د هغوی د ثابت قدمئ ذریعه جوړه شوه. بعضې بزرګان وائی چه د حضور ﷺ سترګو مبارکو ته د هغوی شمیر کم ښکاره شو په کومو سترګو چه حضور ﷺ اوده کیدو خو دا قول غریب دې. چه په قرآن پاك کښې د (منام) لفظ دې نود

دې تاويل د بې دليله کولو څه ضرورت دې. ممکن وو چه د هغوی زيات شمير په زړونوکښې رعب واچوی او په خپل مينځ کښې اختلاف شروع شی چه آيا دوی سره جنګيدل پکار دی که نه. الله تعالی د دې خبرې نه بچ کړل اود هغوی شمير نې ورته کم ښکاره کړو. الله ﷻ د زړونود سينې د راز نه خبردې د ستر کوخيانت او د زړه په راز پوهيږی(¹) په خوب کښې شميرکم خودلوسره ئی بيادا هم مهربانی اوکړه چه دجنګ په وخت کښې دمسلمانانو په نظرکښې هغوی ډيرکم راتلل دې د پاره چه مسلمانان بهادری اوکړی اوهغوی هيڅ څيز اونه ګڼړی. عبدالله بن مسعودﷺ فرمائی چه ما خو اندازه اوکړه او خپل ملګری ته مې اوونيل چه داخلق خو به تر اوياؤ پورې وی هغه پوره اندازه اوکړه نو ونيل نه نه څه يوسل به وی. بيا د هغوی نه يو سړی مونږ سره قيد شو د هغه نه مونږ تپوس اوکړو تاسو څومره ئې؟ هغه وئيل ديو زرلښکر دې(²)بيا دغه شان دکافرانو په نظر کښې هم الله ﷻ دمسلمانانو شميرډيرکم ښکاره کړو نو اوس هغوی په دوی او دوی په هغوی باندې حمله اوکړه. د دې د پاره چه د رب کوم کار دې اود کوم کول چه هغه په خپل علم کښې مقررکړې وو هغه پوره شي او په کافرانو باندې خپل نيول او په مؤمنانوباندې خپل رحمت نازل کړی. نو چه ترکومې پورې جنګ نه وو شروع شوې دواړو طرفوته هم دغه کيفيت وو.جنګ شروع کيدو سره الله ﷻ په يو زر فرښتوسره دخپلو بنديګانو امداد اوکړو د مسلمانانو ډله زياته شوه اودکافرانو زور مات شو. نو اوس خو کافرانوته مسلمانان د خپل خان نه ډېل ښکاره شو او الله ﷻ د مؤحدانو امداد اوکړو اود سترګووالا د پاره ئی د عبرت خزانه کولاؤ کړه. لکه چه آيت ﴿قَدْكَانَ لَكُمْ﴾ کښې بيان شوې دې. نو دواړه آياتونه يو شان دی کم به ښکاره کيدل ترکومې چه جنګ نه وو شروع شوې. د شروع کيدو سره مسلمانان دوچنده ښکاره کيدل.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ | ءَامَنُوٓاْ | إِذَا | لَقِيتُمْ | فِئَةً |
| اے هغه کسانو | اچی ايمان موراوړې دې | اکله چی | امخامخ شئ تاسو | ا ديوې ډلې سره |
| ا اې مؤمنانو کله چه تاسو (په ميدان جنګ کښې کافرانو) ډلې سره ملاؤ شئ (اوجنګ شروع شی نو) | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَٱثْبُتُواْ | وَٱذْكُرُواْ ٱللَّهَ | كَثِيرًا | لَّعَلَّكُمْ | تُفْلِحُونَ ۝ | وَأَطِيعُواْ |
| نومضبوط اوسئ | اويادوئ الله | ا ډير | ابنائي چی تاسو | اکامياب شئ | ااوحکم منئ |
| ثابت قدم شئ (تختئ مه) اود الله ﷻ ذکر زيات زيات کوئ ا د دې دپاره چه کامياب شئ | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ٱللَّهَ | وَرَسُولَهُۥ | وَلَا تَنَٰزَعُواْ | فَتَفْشَلُواْ | وَتَذْهَبَ |
| دالله ا | اودرسول دهغه ا | اومهٔ کوئ جنګ په خپلوکښی | اګنئ نوبې زړه به شئ تاسو ا | اولاړ به شی |
| اودالله اود هغه د پيغمبر تابعدارى کوئ او خپل مينځ کښې اختلاف مکوئ کنی بزدله به شئ او | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| رِيحُكُمْ | وَٱصْبِرُوٓاْ | إِنَّ ٱللَّهَ | مَعَ ٱلصَّٰبِرِينَ ۝ |
| طاقت ستاسو | ااوصبر کوئ | ابې شکه الله ا | دصبر کونکوسره دی ا |
| ستاسو طاقت به ختم شی او صبر کوئ بيشکه د الله ﷻ مدد د صبرکونکو سره دې ا | | | |

**قوله تعالى:: فَٱثْبُتُواْ وَٱذْكُرُواْ ٱللَّهَ كَثِيرًا**

**دجنګې بدرآداب،ثابت قدمى،دالله ﷻ ذکر،درسول اللهﷺ تابعدارى اوصبر:- الله ﷻ خپلومؤمنانوبندي ګانو**

---

(¹) ٤٠/غافر:١٩.

(²) الطبرى:١٣/٥٧٢.

ته د جنګ د کامیابئ چل اود دښمن په مقابله کښې د وخت بهادرئ ښانئ.په یوه غزوه کښې حضورﷺ د نمر د پریوتلو نه پس اودریدو او وئې فرمائیل خلقو! د دښمن سره د ملاویدو خواهش مه کوئ.د الله ﷻ نه عافیت غواړئ خو چه کله دښمنانو سره مقابله اوشي نو مضبوط اوسیږئ او یقین ساتئ چه جنت د تورو د سورو لاندې دې. بیا حضورﷺ اودریدو اود الله ﷻ نه ئې دعا اوکړه اې د رښتونئ کتاب نازلونکیه! اې داوریځو چلونکیه! اولښکروته هزیمت ورکونکیه یاالله ﷻ ! دې کافرانو له ماتې ورکړه او د دوی په مقابله کښې زمونږ امداد اوکړه[1]د عبدالرزاق په روایت کښې دی چه د دښمن د مقابلې خواهش مه کوئ اود مقابلې په وخت کښې ثابت قدم اواولوالعزمی ښانئ سره ددې که هغوی چغې صورې وهي خوتاسو چپ اوسیږئ[2]طبرانی کښې دی په دریو وختونوکښې الله ﷻ ته خاموشي خوښه ده. د قرآن پاك د تلاوت په وخت کښې، دجهاد په وخت کښې او دجنازې په وخت کښې[3] اوپه حدیث شریف کښې دی زما کامل بندیګان هغه دی چه د دښمن د مقابلې په وخت کښې هم زما ذکر کوی یعنی په دې حال کښې هم زما ذکر،مانه دعاګول او ماته فریاد کول نه پریږدی[4] حضرت قتاده رحمه الله فرمائي چه د پوره مشغولتیا په وخت یعنی چه کله تورې چلیږی هغه وخت کښې هم الله ﷻ خپل ذکرلازم کړې دې. د حضرت عطاء رحمه الله قول دې چپ اوسیدل او د ا لله تعالی ذکر کول د جنګ په وخت کښې هم واجب دی. بیا عطاء دغه آیت تلاوت اوفرمائیلو نو ابن جریج رحمه الله د عطاء نه تپوس اوکړو دالله ﷻ یاد په اوچت آواز سره کوی؟ عطاء اوفرمائیل او. کعب احبار رحمه الله فرمائي د قرآن کریم د تلاوت نه اود الله ﷻ د ذکر نه زیات محبوب د الله ﷻ په نیز هیڅ څیز نشته. په دې کښې هم اولی هغه دې دکوم حکم چه خلقو ته په مانځه کښې دې. او په جهاد کښې آیا تاسو نه ګورئ چه الله تبارك وتعالي دجهاد په وخت کښې هم دذکر حکم فرمائیلې.بیا کعب بن الأخبار دا آیت مبارك تلاوت کړو چه ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا ...الاية﴾.شاعر وائی چه د جنګ جګړې په وخت کښې هم زما په زړه کښې ستا یاد وی. عنتره وائی چه د نیزو او تورو په شرقارکښې هم زه تا یادوم. نو په آیت کښې الله ﷻ د دښمن د مقابلې په وخت کښې په میدان جنګ کښې کلك اوسیدلو او د صبر او برداشت کولو حکم ورکړې چه نامردی بزدلی تیختنه او ویره مه کوئ. الله ﷻ یادوئ او هغه مه هیروئ هغه ته فریاد اوکړئ اود هغه نه دعا ګانې غواړئ په هغه باندې یقین ساتئ او د هغه نه امداد غواړئ. هم دغه د کامیابئ طریقه ده. دغه وخت کښې هم د الله ﷻ اود هغه د رسول ﷺ تابعداری د لاس نه مه پریږدئ او څه چه فرمائي هغه پوره کوئ.دکوم نه چه مو بندوی منع شئ اوخپل مینځ کښې جنګ جګړې او اختلاف مه خورئ. اویقین ساتئ د صبر کونکو سره الله ﷻ پخپله وی. صحابه کرام رضي الله عنهم په دې احکاماتوکښې داسې پوره وو چه دهغوی مثال نه په وړاندینوکښې وو اونه روستونو کښې. هم دغه بهادری او هم دغه تابعداری د رسول الله ﷺ هم دغه صبر او استقلال وو د څه په وجه چه د الله ﷻ امداد شامل حال وو او په ډیره کمه موده کښې سره د کم شمیر او اسبابو کمی مشرق او مغرب ئې فتح کړو نه صرف دا چه د خلقودملکونو مالکان جوړ شوبلکه د هغوی زړونه ئې هم فتح کړل اود الله ﷻ طرفته ئې اولګولو. رومیان، فارسیان، ترکیان، صقالیان بربریان، حبشان، سوډانیان او قبطیان غرض دا چه د دنیا ټول سپین او تور ئې دباؤکړل د الله ﷻ کلمه ئې اوچته کړه د حق دین ئې خورکړو او اسلامی حکومت ئې د

---

[1] صحیح بخاری کتاب الجهاد باب کان النبی اذالم یقتل اول النهار اخر القتال حتی تزول الشمس...:۲۹۶۶، صحیح مسلم:۱۷۴۲. (بخاری ومسلم)

[2] مصنف عبدالرزاق:۹۵۱۸، بیهقی:۱۵۳/۹.

[3] طبرانی:۵۱۳۰.

[4] ترمذی کتاب الدعوات باب: ۳۵۸۰.

دنیا په ګوټ ګوټ کښې مضبوط کړو. الله ﷻ دې د هغوی نه خوشحاله شی او هغوی دې هم خوشحاله اوساتی. خیال اوکړئی چه په درویشت کاله کښې د دنیا نقشه بدله کړه د تاریخ پاڼره ئی واړوله. الله ﷻ دې زمونږ هم د هغوی ډلې سره حشر اوکړی الله ﷻ کریم دې او وهاب دې.

| وَلَا تَكُوْنُوْا | كَالَّذِيْنَ | خَرَجُوْا | مِنْ دِيَارِهِمْ | بَطَرًا | وَّرِئَآءَ النَّاسِ |
|---|---|---|---|---|---|
| اومهٔ کیږئ تاسو | پشان | دهغه کسانو | اچی اووتل | اد کورونو خپلونه | ادپاره دفخر | اودښودنې دخلقو |

اودهغه کسانو پشان مه کیږئ چه د خپلو کورونو نه د فخر او د خلقو د خودنې دپاره وتلې وو

| وَيَصُدُّوْنَ | عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۭ | وَاللّٰهُ | بِمَا | يَعْمَلُوْنَ | مُحِيْطٌ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| اومنع کوی خلق | دلارې دالله نه | اوالله | اپه هغه کارونو | اچی کوی ئې هغوئ | ااحاطه کونکې دې |

اود الله ﷻ د لارې نه خلق منع کوی او الله ﷻ د دوی (خلقو) د ټولو کارونو احاطه کونکې دې

| وَاِذْ | زَيَّنَ | لَهُمُ | الشَّيْطٰنُ | اَعْمَالَهُمْ | وَقَالَ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوکله چې | اښائیسته ښکاره کړل | اهغوئ ته | شیطان | اعملونه دهغوئ | او وې وئیل |

اوهغه وخت یاد کړه کله چه شیطان دوی (کافرو) ته د هغوی عملونه ښائسته کړل او ورته ئې اووئیل

| لَا غَالِبَ | لَكُمُ | الْيَوْمَ | مِنَ النَّاسِ | وَاِنِّيْ | جَارٌ | لَّكُمْ ۚ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نشته غالب | اپه تاسو | انن ورځ | ادخلقو نه | اوبیشکه زهٔ | اساتونکې یم | اتاسو لره |

چه نن ورځ په خلقو کښې څوک هم په تاسو غالب نشته او زه (د مسلمانانو نه) ستاسو ساتونکې یم

| فَلَمَّا | تَرَآءَتِ | الْفِئَتٰنِ | نَكَصَ | عَلٰى عَقِبَيْهِ | وَقَالَ | اِنِّيْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نوهرکله چې | ایوبل اولیدل | ادواړوډلو | انوبیرته اوګرځیدل | هغه اپه پوندوخپلو | ااووې وئیل | ابیشکه زهٔ |

نوکله چه دوو ډلو (کافرانو او مسلمانانو) یوبل اولیدل نوشیطان په خپلو پوندو واپس شو او دا ئې

| بَرِيْٓءٌ | مِّنْكُمْ | اِنِّيْٓ | اَرٰى | مَا | لَا تَرَوْنَ | اِنِّيْٓ | اَخَافُ | اللّٰهَ ۭ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| بیزاره یم | استاسونه | ابیشکه زهٔ | اوینم | اهغه | اچې تاسوئې نهٔ وینئ | ابیشکه زهٔ | ایریږم | ادالله نه |

اووئیل زه ستاسو (دملګرتیا نه) بیزاره یم اځکه چه زه هغه (فرښتې او عذاب) وینم چه تاسو ئې نه وینئ او زه د

| وَاللّٰهُ شَدِيْدُ | الْعِقَابِ ۝ | اِذْ | يَقُوْلُ | الْمُنٰفِقُوْنَ | وَالَّذِيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوالله سخت دې | ادعذاب په ورکولوکښې | اکله چې | اووئیل | امنافقانو | اوهغه کسانو |

الله نه ویریږم ځکه چه الله سخت عذابونکې دې هغه وخت یاد کړه چه اووئیل منافقانو او د کومو خلقو په زړونو

| فِيْ قُلُوْبِهِمْ | مَّرَضٌ | غَرَّ | هٰٓؤُلَآءِ | دِيْنُهُمْ ۭ | وَمَنْ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې په زړونودهغوئ کښې | امرض وؤ | اچې مغرور کړی دی | ادې کسانولره | ادین خپل | اوهغه چاچې |

کښې چه (د نفاق) مرض وو. دا خلق (مسلمانان) خپل دین په دهوکه کښې اچولې دی اخوچه چا په الله

| يَّتَوَكَّلْ | عَلَى اللّٰهِ | فَاِنَّ اللّٰهَ | عَزِيْزٌ | حَكِيْمٌ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| بهروسه اوکړه | اپه الله باندې | انوبیشکه چې الله | اغالب دې | اودحکمت خاوند دې |

تعالی باندې بهروسه اوکړه نو الله ﷻ غالب دې او صاحب د حکمت دې

**قوله تعالى:: وَاِنِّیْ جَارٌلَّكُمْ**

**په غزوه بدركښې د ابليس لعين شريكيدل او تيخته:-** په جهاد كښې ثابت قدمي نيك نيتي دالله ﷻ د ذكر په كثرت سره نصيحت كول دمشركانو دمشابهت نه منع كوي.لكه څنګه چه هغوی د حق د ختمولو په خلقو كښې خپله بهادري خودلو د پاره فخر او غرور سره د خپلو ښارونونه روان شو نو تاسو داسې مه كوئ.چه كله ابوجهل ته اووئيلې شو چه قافله خو بچ شوه اوس واپس كيدل پكار دی نو هغه ملعون جواب وركړو واه چرته واپس كيدل دبدراوبوله به خو اوهلته به ديره كيږو هلته به شرابونه څكو كبابونه به خورو ګانې بجانې به اورو دې د پاره چه په خلقو كښې مشهور شو. د الله ﷻ د شان نه قربان شم د هغوی ارمانونه الله ﷻ څنګه واړول.هم دلته د هغوی لاشونه پريوتل او هم دلته په كندوكښې ورواچولې شو.الله ﷻ دهغوی اعمال راګيرونكې دې. دهغوی ارادې الله ﷻ ته ښكاره دی په دې وجه هغوی خراب وخت سره مخ شو.نو دادمشركانو ذكر دې چه د الله ﷻ د رسول ﷺ چه درسولانو سرتاج دې بدر ته جنګ له تلې وو د هغوی ګانې ويونكې هم وې د سروز سامانونه هم وو، شيطان لعين د هغوی شاته ولاړ وو هغوی غولول اود هغوی كارونه نی ښائسته كول او خودلې د هغوی په غوړونوكښې دا وينا كوله چه تاسو ته څوك ماتې دركولې شی.د هغوی د زړه نه نی د بنوبكر په مكه باندې حملې كولو ويره ويستله. اود سراقه بن مالك بن جعشم په شكل كښې د هغوی په وړاندې ولاړ ووئيلې چه زه خود دې علاقې سردار يم بنومدلج ټول زما تابع دی زه ستاسو حمايتی يم تاسو بې فكره اوسيږئ. اود شيطان كار هم دغه دې چه ددروغوعدې اوكړی نه كيدونكی اميدونه دركړی اود دهوكې په جال كښې مو اونخلوی. د بدر په ورځ ده خپلې جنډې او لښكرې واخستې او مشركانوسره شو. د هغوی په زړونوكښې اچول چه بس هم تاسو به ګټه كوئ. ستاسو امدادی يم. خو چه كله مسلمانانو سره مقابله شروع شوه اود دې خبيث نظر په فرښتو باندې پريوتلو نو په الته پښو باندې اوتختيدو اووئيل نی زه هغه وينم د كوم نه چه ستاسو سترګې ړندې دی. ابن عباس ؓ فرمائی چه د بدر په ورځ شيطان خپله جنډا اوچته كړې وه اود مدلجی سړی په شكل كښې خپل لښكر سره راورسيدو او د سراقه ابن مالك بن جعشم په شكل كښې ښكاره شو اود مشركانو زړونه نی لوړول او همت نی وركولو. كله چه ميدان جنګ كښې صفونه جوړ شو نو رسول الله ﷺ يو موټې خاوره د مشركانو په مخونو ورواوويشته په دې سره د هغوی حوصلې پريوتلې او په هغوی كښې ګډبړ او ويره شروع شوه. حضرت جبرائيل ؑ د شيطان طرف ته لاړو دغه وخت كښې هغه د يومشرك په لاس كښې لاس اچولې وو. د حضرت جبرائيل ؑ په ليدو باندې شيطان د هغه د لاسه خپل لاس راښكلو اود خپلو لښكرو سره اوتختيدلو. دې سړی اووئيل سراقه تاخو وئيل چه زه ستاسو حمايتی يم دا اوس څه كوې. دې ملعون خو فرښتې ليدلې نو وئی وئيل زه هغه وينم كوم چه تاسو نه وينئ. زه خو د الله ﷻ نه ويريدونكې سړې يم. د الله ﷻ عذاب ډير دروند دې. او په روايت كښې دی چه هغه تختيدو نو حارث بن هشام اونيولو هغه دې په څپيړه په مخ اووهلو دې سره هغه بې هوشه شو پريوتلو نو هغه نورو اووئيل چه سراقه خو په دې حال كښې مونږ ذليل كوی او په داسې وخت كښې مونږ له دهوكه راكوی. هغه وئيل او زه ستاسو نه بيزار يم او بې تعلقه يم زه هغه وينم كوم چه تاسو نه وينئ. د حضرت ابن عباس ؓ بيان دې چه په حضور ﷺ باندې د لږ شان وخت د پاره بې خودی شان راغله بيا رابيدار شو او وئی فرمائيل صحابه كرامو! خوشحاله شئ دا دې ستاسو ښی طرف ته حضرت جبرائيل ؑ اودا دې ستاسو ګس طرف ته حضرت ميكائيل ؑ اودا دې حضرت اسرافيل ؑ دريواړه سره د خپلو فوجيانو موجود دی. ابليس د سراقه بن مالك بن جعشم په شكل كښې مشركانو كښې وو د هغوی زړونه نی لوړول اوپه هغوی كښې پيشن ګوئی كولې چه بې فكره اوسيږئ نن تاسو ته څوك هم ماتې نه شی دركولې. خود فرښتو لښكر په ليدو باندې هغه مخ واړولو اودې وينا كولو

سره اوتختیدو چه زه تاسو نه بیزار یم او زه هغه وینم کوم چه تاسو نه وینئ. حارث بن هشام‌ﷺ خو هغه سراقه گنړلې وو په دې وجه هغه د ده لاس اونیولو نو هغه دې په سینه کښې داسې په زوره باندې په سوك اووهلو چه دې خو پرمخې راپریوتلو او شیطان اوتختیدو. سمندرکښې ورټوپ کړو او خپله کپړا نې اوچته کړه او وئې وئیل یا الله زه تاته خپله وعده یادوم کومه چه تا ماسره کړې وه. په طبرانی کښې دحضرت رفاعه بن رافع‌ﷺ نه هم داسې مروی دی.حضرت عروه بن زبیر‌ﷺ فرمائی کله چه قریشو دمکې نه د وتلو اراده اوکړه نو هغوی ته د بنی بکر جنگ یاد شو او خیال ئې اوکړو چه هسې نه زمونږ په غیرموجودګئی کښې هغوی دلته حمله اوکړی. نیزدې وه چه هغوی د خپلې ارادې نه لاس راښکلې وې هم هغه وخت ابلیس د سراقه په شکل کښې هغوی له راغلو اودې د بنو کنانه د سردارانو نه وو وئیل زه د خپل قوم ذمه دار یم تاسو دهغوی نه بې پرواه اوسئی اودمسلمانانو د مقابلې د پاره بنه تیار تول لاړشئی. پخپله هم هغوی سره لاړو په لاره کښې به هغوی دې لیدلو. ټولو ته یقین وو چه سراقه پخپله مونږ سره دې تر دې چه جنګ شروع شو هغه وخت دا مردود اوتختیدو. حارث بن هشام‌ﷺ یا عمیر بن وهب‌ﷺ هغه په تلو کښې اولیدو هغوی شور جوړ کړو سراقه چرته اوتختیدو. شیطان هغوی د مرګ او دوزخ په خُله کښې وردیکه کړل او پخپله اوتختیدو. خکه چه هغه ربانی لښکر د مسلمانانو د امداد د پاره راتلونکې لیدلې وو. صفائی وئیل چه زه تاسو نه بیزار یم او زه چه څه وینم تاسو هغه نه وینئی او په دې خبره کښې هغه ربښتونې هم وو.

بیا وائی زه د الله ﷻ نه ویریږم، د الله ﷻ عذاب سخت او دروند دې. هغه حضرت جبرائیل‌ﷺ فرښتو سره راکوزیدونکې لیدلې وو او پوهه شوې وو چه په ما کښې د ده د مقابلې طاقت نشته یا په مشرکانو کښې طاقت نشته. هغه په خپل دې قول کښې دروغژن وو چه زه خو پخپله رب یم اودا خو د هغه زبانی خبره وه په اصل کښې هغه په خپل ځان کښې طاقت نه لیدلو او هم دا د رب د دې دښمن عادت دې چه غصه کول او دهوکه کول کوی د حق په مقابله کښې اودرول کوی او بیا پټیږی. قرآن کریم فرمائی چه شیطان انسان ته دکفرحکم کوی بیا چه کله هغه کفرکوی نو دې وائی زه تانه ویزاره یم اوزه د رب العالمین نه ویریږم. او آیت کښې دی چه کله دې کار اوباسی نو وائی د الله ﷻ وعدې ربښتونی دی زه پخپله دروغژن او زما وعدې ټولې دروغژنې زما خو په تاسو باندې څه زور نه وو تاسو خو پخپله زما په خواهش باندې خپل سټ تیټ کړو اوس ما مه ملامته کوه. پخپله خپل ځان ملامته کړی نه زه تاسو بچ کولې شم او نه تاسو زما په څه کار راتلې شئی دې نه وړاندې چه تاسو زه رب سره شریك ګرځولم زه خو نن د هغې نه هم انکاری یم. یقین اوساتئی چه د ظالمانو دپاره دردناك عذاب دی حضرت ابوا سیدمالك بن ربیعه‌ﷺ فرمائی که زما سترګې نن هم بینا وې نو ما به د بدر په کنده کښې تاسو ته خودلې وې اوچه دکوم ځائ نه فرښتې راتلې بې شك شبهې ماته هغه معلوم دی. هغه ابلیس اولیدلو او الله ﷻ هغوی ته حکم ورکړو چه مؤمنان ثابت قدم اوساتئی. دوی به خلقو له د هغوی د پیژندګلو په شکل کښې راتلې او ورته به ئې وئیل چه خوشحاله شه دا کافران هم لاڅه دی د الله ﷻ امداد تاسو سره دې لکه د زمری غوندې حمله کوئې. ابلیس چه دا اولیدل نو اوتختیدو.تراوسه پورې هغه د سراقه په شکل کښې په مشرکانوکښې وو.ابوجهل چه دا اولیدل نوپه خپل لښکر کښې ګشت شروع کړو اووئیل ئې چه ویریږئی مه د ده په تختیدو باندې زړه مه تنګوئې. دې خو د محمد(ﷺ) د طرف نه خودلې شوې راغلې وو چه تاسو په عین موقع کښې بزدله کړی هیڅ د ویریدلو خبره نشته. په لات او عزی باندې قسم نن به دا مسلمانان د خپل نبی سره راګیروو نامردی مه کوئې زړه لوئې کړئې سخته حمله اوکړئې خو خبردار قتل مه کوئې ژوندې به ئې نیسو دې د پاره چه هغوی ته په کولاؤ زړه سره سزاګانې ورکړو. دا هم د خپلې زمانې فرعون وو هغه هم د جادوګرو په ایمان راوړو باندې وئیلې وو دا خو صرف ستاسو یوه دهوکه ده چه دې ځائ نه مونږ اوباسئی. هغه دا هم وئیلې وو چه جادوګرو دا موسی ﷺ خو

ستاسو استاذ دې حالانکه دا د هغوی صرف دهوکه او فریب وو. رسول الله ﷺ فرمائی چه د عرفه په ورځ چه شیطان څومره سپك ذلیل رسوا او شړلې شی داسې به په بله ورځ نه وی شړلې شوې. ځکه چه هغه وینی چه د الله ﷻ عام معافی او رحمت نازلیږی د هر یوګناه عام معاف کیږی اود بدر د ورځې د هغه د رسوائې او ذلت تپوس مه کوه. کله چه هغه جبرائیل ؑ اولیدو چه د فرښتو لښکرې د هغه په ماتحتئی کښې راروانې دی.(۱) کله چه دواړو فوځیانو صفونه جوړکړل او یو بل ته مخامخ شو نو د الله ﷻ په قدرت اوحکمت سره مسلمانان کافرانو ته ډیر کم ښکاریدل او کافر د مسلمانانو په نظرکښې کم لیدلې شو.په دې باندې کافرانو خنداګانې کولې چه ګوره مسلمانان څنګه مذهبی لیونی دی چه یو موټی مسلمانان زمونږ د یو زرو لښکر سره جنګیږی. اوس به هغوی یو دم ذره ذره شی او په رومئی حمله کښې به هغوی ماتې اوخوری او سرونه به خوزونکی پاتې شی. الله ﷻ فرمائی چه دوی ته نه ده معلومه چه دا د متوکلینو ډله ده  د دوی یقین په الله ﷻ باندې دې چه د غلبې مالك دې او د حکمت مالك دې(۲)دې کافرانو چه کله د الله ﷻ ددین سختئی ئې په مسلمانانوکښې محسوس کړې نود هغوی د خلې نه دا کلمه اووتله چه دوی مذهبی لیونی دی. د رب دښمن ابوجهل ملعون د غونډئی نه د الله والا د کمې او تش لاس لیدلو باندې لکه د خر پلنیدو او وئیل چه کاربه مواوکړو نن نه پس به د الله ﷻ د عبادت کونکونه زمکه خالی شی نن به مونږ د هغوی یو یو دوه دوه ځائ کړو. ابن جریج رحمه الله وائی چه د مسلمانانو په دین کښې پیغوروونه ورکول دمکې منافقان وو.عامر وائی دایوڅو کسان وو چه صرف په ژبه مسلمانان شوی وو خو نن د بدر په میدان کښې مشرکانو سره وو هغوی ته د مسلمانانو کمې اوکمزوری ښکاره کیدو باندې حیرانتیا اوشوه او ونې وئیل چه دې خلقو خو مذهبی دهوکه خوړلې ده(۳) مجاهد رحمه الله وائی چه داد قریشو یوه ډله وه. قیس ابن ولید بن مغیره او ابو قیس بن فاکه بن مغیره اوحارث بن زمعه ابن اسودبن عبدالمطلب اوعلی بن امیه بن خلف اوعاص بن منبه بن حجاج دوی قریشو سره وو خو وو دوی په شك کښې او هم په دې کښې رابند شوی وو اودلته ئې د مسلمانانو حالت اوکتو نو ونې وئیل چه دا خلق مذهبی مجنونان دی ګنې یو موټی کسان بې سامانه او بې وسلې د دومره ډیر لوئی شان اوشوکت والا فوجیانو په وړاندې څنګه اودریدې شی؟ حضرت حسن رحمه الله فرمائی چه دا خلق د بدرجنګ له نه وو راغلی د دوی نوم منافقان کیخودې شوې وو. وائی چه دا قوم د اسلام اقراری ووخودمشرکانوپه سیلاب کښې رااوبهیدل دلته راغله دلته په راتلو سره ئې د مسلمانانو دا کمزورې دسته اوکته نو ونې وئیل.(غَرَّ هٰٓؤُلَآءِ دِيْنُهُمْ) الله ﷻ چه د لوئ شان خاوند دې فرمائی چه څوك په دې مالك الملك باندې بهروسه اوکړی هغه دعزت خاوند کوی ځکه چه عزت دهغه وینځه ده او غلبه د هغه غلام. هغه اوچت ذات دې هغه د ډیر لوئ شان خاوند دې هغه په رښتونې سلطان دې هغه حکیم دې دهغه ټول کارونه دحکمت نه ډك وی هغه هریو څیزپه خپل ځائ صحیح سائی. د امداد د حقدارانو هغه امداد کوی اود ذلت حقداران ذلیل کوی هغه ټول ښه پیژنی.

| وَلَوْ تَرٰۤى | اِذْ | يَتَوَفَّى | الَّذِيْنَ | كَفَرُوا | الْمَلٰۤئِكَةُ | يَضْرِبُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوکه اووینې ته | هغه حالت | چې روح قبض کوی | دهغه کسانو | چې کفر ئې کړې دې | فرښتې | وهی هغوئ |

اوکله چه فرشتې (دمرګ په وخت کښې) وینې چه د کافرانو روحونه قبض کوی او هغوی په مخونو او شاګانو باندې

(۱) موطا امام مالك كتاب الحج :۲٤٥.
(۲) الدرالمنثور: ۷۸/٤.
(۳) الطبری: ۱۳/۱٤.

| وُجُوْهَهُمْ | وَاَدْبَارَهُمْ | وَذُوْقُوْا | عَذَابَ | الْحَرِيْقِ۝ | ذٰلِكَ |
|---|---|---|---|---|---|
| مخونه دهغوئ | اوشاګانې دهغوئ | اچې اوڅکئ | عذاب | دسوزيدو | دا په سبب دهغې |

وهي (او ئيکوی او دا په ورته هم وائی چه) سوزيدونکي غذاب (د جهنم) اوڅکئ ا دا عذاب (د سوزيدو)

| بِمَا قَدَّمَتْ | اَيْدِيْكُمْ | وَاَنَّ اللّٰهَ | لَيْسَ | بِظَلَّامٍ | لِّلْعَبِيْدِ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې مخکښې ليږلي دي | لاسونه ستاسو | اوبيشکه الله | نه دی | ظلم کونکي | په بندګانو خپلو |

دهغه (بدو اعمالو) په وجه دې کوم چه ستاسو لاسونو کړی وو او الله ﷻ په خپلو بندګانو ظلم کونکي نه دې

قوله تعالى:: يَضْرِبُوْنَ وُجُوْهَهُمْ وَاَدْبَارَهُمْ

**په کافرانو نزع په حالت کښې سختي:-** افسوس اې پيغمبره اچه تا کتلي دافرښتې چه څنګه د کافرانو روح قبض کوی او په دغه وخت کښې هغوی په مخونو او ملاګانو باندې وهي او وائی چه د اُور عذاب د خپلو بدعملو په وجه اوڅکئ. دا مطلب هم بيان کړې شوې دې چه دا واقعه هم د بدر د ورځې ده چه مخامخ به د دې کافرانو په مخونو توری پريوتلې او چه کله به تختيدل نو په شاګانو به ئې ګذارونه کيدل، فرښتو به هغوی ښه برابرول. يو صحابي ﷺ حضور ﷺ ته عرض اوکړو چه ما دابوجهل په شاباندې د ازغوغوندې نښې اوليدلې. حضور ﷺ اوفرمائيل چه د فرښتو د وهلو نښې دی. حق خو دا دې چه دا آيت د بدر سره مخصوص نه دې الفاظ عام دی. د هر يو کافر هم دا حال وی. په سورة قتال کښې هم د دې خبرې ذکر بيان شوې دې اود سورة انعام په آيت ﴿وَلَوْ تَرٰى اِذِ الظّٰلِمُوْنَ فِيْ غَمَرٰتِ الْمَوْتِ﴾ کښې هم د دې بيان سره دتفسير تيرشوې دې. څکه چه دا نافرمانه خلق وو ددوی دمرګ په وخت کښې د فرښتو لاسونه دهغوی طرف ته وراوږديږی او هغوی ښه وهی، د هغوی روحونه د دوی د بدو عملونو په وجه د هغوی په بدن کښې پټيږی راپټيږی کوم چه فرښتې په زور راوباسی او ورته وائی چه ستا د پاره د الله ﷻ غضب دې او د الله ﷻ عذاب دې. لکه چه د حضرت براء ﷺ په حديث کښې دی چه په خراب حالت کښې د سکرات مرګ په وخت کښې کله کافرله ملك الموت ﷺ راځی نو فرمائی اې خبيثه روحه روان شه ګرمو هواګانو او ګرمو اوبو او ګرم سوری طرف ته نو هغه روح په بدن کښې پټيږی نو آخر هغه په زور سره راښکلې شی لکه څنګه چه د ژوندی سرې څرمن راويستې شی اودې سره رګونه او پټې هم راوځی[1] فرښتې هغه ته وائی اوس دسوزيدو مزه اوڅکه. دا ستاد دنيا د بدعملو سزا ده. الله ﷻ ظالم نه دې هغه خوعادل حاکم دې. دبرکت اوچتوالی غنا پاکيزګئی تعريفونوخاوند دې. دغه شان د صحيح مسلم شريف حديث قدسی دې زما بنديګانو! ما په خپل ځان باندې ظلم حرام کړې دې او په تاسو باندې مې هم حرام کړې دې. نو په خپل مينځ کښې څوك په يو بل ظلم زياتې مه کوئ. زما بنديګانو! ما خو ستاسو کړې شوی اعمال راګير کړی دی. په ښيګړه موندو سره زما تعريف کوئ او که دې نه علاوه نور څه اووينئ نو خپل ځان ملامته کوئ.[2]

| كَدَاْبِ | اٰلِ فِرْعَوْنَ | وَالَّذِيْنَ | مِنْ قَبْلِهِمْ |
|---|---|---|---|
| لکه دحال | دتابعانو دفرعون دې | اولکه دهغه کسانو دې | اچې مخکښې ددوئ نه ووْ |

(د دوی حالت) پشان د د فرعون او دهغه کسانو دې کوم چه د دوی نه وړاندې وو.

---

[1] احمد: ۲۸۷/٤-۲۸۸.

[2] صحيح مسلم كتاب البر باب تحريم الظلم: ۲۵۷۷، ترمذی: ۲٤۹۵، ابن ماجه: ٤۲۵۷، احمد: ۱٦۰/۵، الادب المفرد: ٤۹۰، ابن حبان: ٦۱۹.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| كَفَرُوْا | بِاٰيٰتِ اللّٰهِ | فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ | بِذُنُوْبِهِمْ ؕ | اِنَّ اللّٰهَ |
| چي انكار اوكړو هغوئ | دآيتونو دالله | نه انواونيول هغوئ الله | په ګناهونودهغوئ | بيشكه الله |

هغوی د الله ﷻ د ایاتونو نه انکار اوکړو نو الله هغوی د هغوی د ګناهونو په وجه اونیول بیشکهٔ الله

| | | |
|---|---|---|
| قَوِیٌّ | شَدِیْدُ | الْعِقَابِ ۝ |
| دطاقت خاوند دي | اسخت وركونكي دي | اعذاب |

د طاقت خاوند دي او سخت عذاب ورکونکي دي

قوله تعالى:: فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ بِذُنُوْبِهِمْ ؕ

خلق دخپلو ګناهونو په وجه په عذاب کښې راګیریږي.- دي کافرانوتاسره هم هغه اوکړه کوم چه د دوی نه وړاندې کافرانوخپلونبیانوسره کړی وونوموننړهم دوی سره هم هغه اوکړه کوم چه موددوی نه وړاندینو سره کړې وو کوم چه د دوی په شان وو. مثلاً فرعونیان اود هغوی نه وړاندې خلق چا چه د الله تعالی آیاتونه نه منل د څه په وجه چه د الله ﷻ نیول په هغوی راغله. ټول قوتونه هم د الله ﷻ دي اود هغه عذابونه هم ډیر درانه دي. هیڅ څوك نشته چه په هغه باندې غالب راشي او هیڅ څوك نشته چه د هغه نه اوتختیدې شي.

| | | |
|---|---|---|
| ذٰلِكَ | بِاَنَّ اللّٰهَ | لَمْ يَكُ |
| دا عذاب | په سبب دهغې چي بيشكه الله | نه دي |

دا عذاب د دي په وجه دي چه الله ﷻ چه په یو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مُغَيِّرًا | نِّعْمَةً | اَنْعَمَهَا | عَلٰى قَوْمٍ | حَتّٰى | يُغَيِّرُوْا |
| بدلونكي | هغه نعمت لره | چي كړي وی هغه | په يو قوم باندي | اتردي پوري | چي بدل كړی هغوئ |

قوم باندې څه نعمت کړي وي نو هغه نه بدلوی ترڅو چه هغوی خپل نعمت نه وی بدل کړې اودتابعدارئ او

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَا | بِاَنْفُسِهِمْ ۙ | وَاَنَّ اللّٰهَ | سَمِيْعٌ | عَلِيْمٌ ۝ | كَدَاْبِ |
| هغه حال | چي په نفسونو دهغوئ باندي وي | اوبيشكه چي الله | اوريدونكي دي | اوپوهه دي | الكه دحال |

شکر په ځائې ئې نا شکری نه وی کړې او الله ﷻ د هرې خبرې اوریدونکي او په هرڅه عالم دې د دوی

| | | | |
|---|---|---|---|
| اٰلِ فِرْعَوْنَ ۙ | وَالَّذِيْنَ | مِنْ قَبْلِهِمْ ؕ | كَذَّبُوْا |
| دتابعانودفرعون دي | اولكه دهغه كسانودي | چي مخكښې ددوئ نه وو | چي دروغ اوګڼړل هغوئ |

حال د فرعونیانو او هغه خلقو پشان دي چه د هغوی نه وړاندې وو. هغه دا چه هغوی د خپل رب ایاتونه

| | | | |
|---|---|---|---|
| بِاٰيٰتِ | رَبِّهِمْ | فَاَهْلَكْنٰهُمْ | بِذُنُوْبِهِمْ | وَاَغْرَقْنَآ |
| ايتونه | درب خپل | نو هلاك كړل موږ هغوئ | په سبب دګناهونودهغوئ | اوغرق كړل موږ |

دروغ بللي وو. نو الله ﷻ هغوی د هغوی د ګناهونو په سبب هلاک کړل او موږ د فرعون تابعداران

| | | | |
|---|---|---|---|
| اٰلَ فِرْعَوْنَ ۚ | وَكُلٌّ | كَانُوْا | ظٰلِمِيْنَ ۝ |
| تابعان دفرعون | اودا ټول | وو | ظالمان |

د فرعون هلاک کړل دا ټول ظالمان وو

**قوله تعالى:: حَتّٰى يُغَيِّرُوْا مَا بِاَنْفُسِهِمْ**
**دګناهونوپه وجه نعمتونه هم اخستې شي:-** دالله ﷻ د عدل او انصاف بيان كيږى چه هغه خپل وركړې شوى نعمتونه د ګناهونونه اول نه اخلي. لګه څنګه چه دې آيت كښې دى چه الله ﷻ د يو قوم حالت نه بدلوى تركومې چه هغوى خپلې هغه خبرې بدلې نه كړى ګومې چه د هغوى په نفسونوكښې دى. كله چه هغه يو قوم ته د هغوى د بدو په وجه بد وررسول غواړى نو بيا د هغه اراده څوك واپس كولې نه شى او نه هغه سره څوك حمايتى اودريدې شى([1])تاسو اوګورئى چه فرعونيانو اودهغوى په شان د نورو وراندينو سره هم دغه اوشو الله ﷻ خپل نعمتونه وركړل نو هغوى په ګناهونوكښې اخته شو نو الله ﷻ هغوى ته وركړې شوى خپل باغونه چينې پتې خزانې محلونه اونعمتونه چه په كوموكښې هغوى بدمست كيدل ټول واخستل. په دې باره كښې هغوى پخپله خپله بدى اوكړه الله ﷻ په هغوى باندې هيڅ ظلم نه وو كړې.

اَلدَّوَآبِّ شَرَّ اِنَّ
| دګرځنده مخلوق نه | ناكاره | بيشكه |
بيشكه د الله ﷻ.

لَا يُؤْمِنُوْنَ فَهُمْ كَفَرُوْا الَّذِيْنَ عِنْدَ اللهِ
په نز دالله | هغه كسان دى اچې انكار ئې اوكړو دحق نه | نوهغوىٰ | ايمان نه راوړى
په نيز په ساه لرونكى څيزونو كښې د ټولونه بدترين هغه دې چه كفر ئې كړې دې او ايمان نه راوړى

عَهْدَهُمْ يَنْقُضُوْنَ ثُمَّ مِنْهُمْ عٰهَدْتَّ اَلَّذِيْنَ
خاص طورهغه كسان اچې وعده واغستله تا | دهغوىٰ نه | اوبيا | ماتوى هغوىٰ | وعده خپله
خاص كرهغه كسان (بدترين دى) چا سره چه تا په دوى كښې وعده كړې ده اوبيا (هم) هغوى هرځل

فِي الْحَرْبِ تَثْقَفَنَّهُمْ فَاِمَّا لَا يَتَّقُوْنَ وَّهُمْ فِيْ كُلِّ مَرَّةٍ
په هره موقع كښى | اوهغوىٰ | نهٔ يريږى دالله نه | انو كه | بيا مومې تهٔ هغوىٰ لره | په جنګ كښى |
وعده ماتوى او د الله ﷻ نه (په وعده ماتولو كښې) نه ويريږى نو كه چرته تا دوى په جنګ كښې موندل

لَعَلَّهُمْ خَلْفَهُمْ مَّنْ بِهِمْ فَشَرِّدْ
نواويروه | په سزادهغوىٰ سره | هغه څوك | اچې روستودهغوىٰ نه دى | دپاره ددې
نودهغوى په وجه هغه خلق اوويروه كوم چه ددوى نه روستو دى .......... .......... د دې دپاره

يَذَّكَّرُوْنَ
چې هغوىٰ عبرت واخلي دوعده خلافو دا نجام نه
چه دوى نصيحت قبول كړى

**قوله تعالى:: فَشَرِّدْ بِهِمْ مَّنْ خَلْفَهُمْ**
**وعده خلافو كافرانوته عبرتناكه سزا وركړه:-** په زمكه باندې چه څومره هم ګرځى راګرځى د دې ټولونه

---

[1] ۱۳/الرعد: ۱۱.

زیات خراب د الله ﷻ په نیز بې ایمانه کافران دي. کوم چه وعده کوي او بیانې ماتوي. یوخوا قول او وعده اوکړه بل خوانې ماته کړه، نه د الله ﷻ ویره او نه د ګناه فکر. نو چه ته کله په جنګ کښې په دوی غالب شې نو داسې سزا ورکړه چه د روستنود پاره هم عبرت شي. هغوي هم اوویرېږي نو ممکن دی چه د خپلو داسې کارونونه منع شي.

| وَإِمَّا | تَخَافَنَّ | مِنْ قَوْمٍ | خِيَانَةً | فَانْبِذْ | إِلَيْهِمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوکه چرې | ته یریدلې | دیوقوم نه | د خیانت کولو | نو اوغورزوه | هغوئ ته |

اوکه چرته د یوې ډلې نه مو د خیانت کولو ویره کیږي نو هغوي سره

| عَلَىٰ سَوَاءٍ | إِنَّ اللَّهَ | لَا يُحِبُّ | الْخَائِنِينَ |
|---|---|---|---|
| په برابرئ سره | بیشکه چې الله | نۀ خوښوي | خیانت ګرخلق |

چه کله معاهده پوره شي هغه واپس کړه بیشکه الله ﷻ خیانت ګر نه خوښوي

**قوله تعالی:: فَانْبِذْ إِلَيْهِمْ عَلَىٰ سَوَاءٍ**

**خیانت اووعده خلافي دمذمت قابل دي.** ارشاد کیږي چه اې نبي ﷺ! که چرې چا سره ستا وعده شوې وي اوتاته ویره وي چه دوي به بدعهدي او وعده خلافي اوکړي نو تاته اختیار درکولې شي چه د برابرئ په بنیاد باندې وعده ماته کړه او هغوي ته خبرورکړه چه هغوي هم د صلح په خیال کښې نه وي. څو ورځې وړاندې هغوي ته خبر ورکړه. الله ﷻ خیانت نه خوښوي نو ته کافرانو سره هم خیانت مه کوه. په مسند احمد کښې دي چه امیر معاویه رضی الله عنه لښکرې د روم سرحد طرف ته وروړاندې کول شروع کړه چه د صلح موده ختمیدو سره به ناڅاپي په هغوي باندې حمله اوکړي نو یو شیخ په خپله سورلئ باندې سور راغلو او وئې وئیل چه الله ﷻ ډیر لوئ دې الله ﷻ ډیر لوئ دې وعده اوساتئ دهوکه صحیح نه ده. د رسول الله ﷺ فرمان دې چه کله یو قوم سره وعده او شي نو مه یوه غوټه ترئ او مه سپړئ ترکومې چه د صلح موده ختمه نه شي یا هغوي ته په خبر ورکولو سره معاهده ماته نه شي. کله چه دا خبره معاویه رضی الله عنه ته اورسیده نوهغوي خپل فوځ ته هغه وخت دواپس کیدوحکم ورکړو. داشیخ حضرت عمروبن عبسه رضی الله عنه وو[1] سلمان فارسي رضی الله عنه دیو ښارقلعه ته په رسیدوخپلوملګرو ته اوونیل تاسوماپریږدئ چې هغوئ ته دعوت ورکړم. لکه څنګه چه ما رسول الله ﷺ هغوي په رابللو باندې لیدلې وو. بیا فرمائي چه زه هم دهغوي نه یوسړې ووم. نوماته الله ﷻ داسلام هدایت اوکړونوکه تاسوهم مسلمانان شئ نو چه کوم زمونږ حق دې هغه به ستاسو هم حق شي. او چه څه په مونږ باندې دی هغه به په تاسو باندې هم وي. اوکه تاسودا نه منئ نودذلت سره به جزیه ورکوئ. که دا هم نه قبلوئ نو مونږ تاسوته د اوسه خبر درکووا ومونږ اوتاسو برابر یو الله ﷻ خیانت کونکي نه خوښوي. دریو ورځو پورې ئې هغوي ته داسې دعوت ورکړو اوپه څلورمه ورځ سحر په سحر حمله اوکړه نو الله ﷻ فتح ورکړه او امداد ئې اوکړو.[2]

| وَلَا يَحْسَبَنَّ | الَّذِينَ | كَفَرُوا | سَبَقُوا |
|---|---|---|---|
| اوګمان دې نۀ کوي | هغه کسان | چې ګنې کافران دي | چې ګنې هغوئ مخکښې شو |

اوکافران دې دا خیال نه کوي چه ګنې دوي زمونږ د نیولو نه خلاص شوي دي

---

[1] ابوداؤد کتاب الجهاد باب في الامام یکون بینه وبین العدو عهدفیسیرنحوه...:۲۷۵۹، وسنده صحیح، ترمذی:۱۵۸۰، احمد/۱۱۱، السنن الکبری للنسائي: ۸۷۳۲، بیهقی:۲۳۱/۹.

[2] احمد:۴۴۰/۵، ترمذی کتاب السیر باب ماجاء في الدعوة قبل القتال:۱۵۴۸.

| اِنَّهُمْ | لَا يُعْجِزُوْنَ۝ | وَاَعِدُّوْا | لَهُمْ | مَّا | اسْتَطَعْتُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه هغوئ | نشي عاجزه کولي مونږ | او تیاري کوئ | دپاره دهغوئ | څومره چې | وس رسي ستاسو |

بیشکه دوئ (الله ﷻ) نشي مغلوبه کولي او ستاسو نه چه څومره کیدي شي نو د دوی (کافرانو) دپاره

| مِّنْ قُوَّةٍ | وَّمِنْ رِّبَاطِ الْخَيْلِ | تُرْهِبُوْنَ | بِهٖ | عَدُوَّ اللّٰهِ | وَعَدُوَّكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| د طاقت نه او د تړلو | د اسونو نه چې یروئ تاسو | | په ذریعه | دهغې | دشمن دالله او دشمن ستاسو |

د (هر قسم) قوت نه او د اسونو تیارولو نه چه تاسو په هغې سره د الله ﷻ او خپل دشمن

| وَاٰخَرِيْنَ مِنْ دُوْنِهِمْ | لَا تَعْلَمُوْنَهُمْ | اَللّٰهُ يَعْلَمُهُمْ | وَمَا | تُنْفِقُوْا |
|---|---|---|---|---|
| او نور کسان بې د دوئ نه | چې تاسو نه پیژنئ هغوئ | الله پیژنئ هغوئ | او هغه چې | اخرچ کوئ تاسو |

او د هغوی نه علاوه نور کسان یروئ اکوم چه تاسو نه پیژنئ خو الله ﷻ هغوی پیژني او تاسو چه کوم

| مِنْ شَيْءٍ | فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ | يُوَفَّ | اِلَيْكُمْ | وَاَنْتُمْ | لَا تُظْلَمُوْنَ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| یو څیز | په لار دالله کښې | پوره بدله به درکړې شي | تاسو ته | او تاسو سره به | زیاتي اونه کړې شي |

څیز هم د الله په لار کښې خرچ کوئ انو تاسو ته به پوره بدله درکولي شي او هیڅ زیاتي به در سره نشي کولي

**قوله تعالی:: وَاَعِدُّوْا لَهُمْ مَّا اسْتَطَعْتُمْ**

**د جنګ سامان هروخت تیار ساتلو حکم:-** الله ﷻ فرمائی کافران خلق دې دا نه ګنړي چه هغوی به زمونږ نه اوتختی اومونږ اوس دهغوی په نیولو قادرنه یو.بلکه هغوی هروخت زمونږ په قبضه او قدرت کښې دی هغوی مونږ ته ماتې نه شی راکولې. او په آیت کښې دي چه بدی کونکي زمونږ نه وړاندې کیدې نه شي([1])فرمائی کافران دلته مونږ ته ماتې نه شي راکولې هلته خود هغوی ځائ اور دې چه ډیر خراب ځائ دې([2])اوفرمان دې چه دکافرانو په ښارونوکښې تګ راتګ او ګرځیدل چرته تاسو په دهوکه کښې وانچوی داخوهسې جمع واری ده د دوی ځائ دوزخ دې چه ډیر خراب ځائ د اوسیدو دې([3])بیا مسلمانانوته حکم ورکوی چه دخپل طاقت امکان مطابق د کافرانود مقابلې د پاره هر وخت تیار اوسیږئ چه قوت اوطاقت اسونه اولښکرساتې شتې اوساتې.په مسند کښې دی چه حضورﷺ قوت تفسیر غشو ویشتلو سره کړې دې اودوه څل نې دا اوفرمائیل([4]) چه غشي ویشتل کونې سورلی کونې د غشو ویشتل د اسونو د سوریدلو نه بهتر دی. ([5])

**د اسونو درې قسمونه::** فرمائی داسونو ساتونکی درې قسمه دی یو خو اجر او ثواب موندونکی یو نه ثواب او نه عذاب او یو عذاب زغمونکی. کوم چه د جهاد په اراده سره اوساتی د هغه اس څرن دانه راغونډول اوتګ راتګ چه څه کوی په هغې باندې ثواب ملاویږی.تردې چه که هغه خپله رسئ اوشلوی او اوتختی نو بیا هم د هغه د پښو په قدمونواو خاشړو باندې ده ته نیکئی ملاویږی. په یو نهر باندې د تیریدو په وخت کښې که هغه اوبه اوڅکی که مجاهد د ابوڅکولو اراده نه وی کړې نو بیا

---

[1]) ۲۹/العنکبوت: ٤.

[2]) ۲٤/النور: ۵۷.

[3]) ۳/آل عمران: ۱۹۶-۱۹۷.

[4]) صحیح مسلم کتاب الامارة باب فضل الرمی والحث علیه وذم من علمه ثم نسیه: ۱۹۱۷، ابوداوٗد: ۲۵۱، ابن ماجه: ۲۸۱۳

[5]) ابوداوٗد کتاب الجهاد باب ل الرمی: ۲۵۱۳، وسنده حسن، ترمذی: ۱۶۳۷، نسائی: ۳۶۰۸، ابن ماجه: ۲۸۱۱، احمد: ۱٤/۸٤، حاکم: ۲/۹۵.



هم نیکئی ملاویږی. نودا اس خود هغه دساتونکی دپاره دیو ډیراجر او ثواب ذریعه ده. اوچه کوم سړی اس اوساتلو چه هغه د نورو خلقو نه بې پرواه شی او بیا ئې د الله ﷻ حق هم د ده په غاړه اود هغه په سورلئی کښې هیر نه کړو نو دا د هغه د پاره پردٔه ده یعنې نه د هغه ګناه شته او نه اجر. دریم هغه سړی چه دفخراوخان خودلو د پاره ئې اوساتی اود مسلمانانود مقابلې د پاره نودا د ده د پاره سخت نقصانی دی او د ده په غاړه بوج دې. د حضورﷺ نه تپوس اوشو چه د خرو باره کښې څه حکم دې؟ نو حضورﷺ اوفرمائیل چه د دې باره کښې څه خاص له آیت خونه دې نازل شوې اودا جامع عام آیت موجود دې که یو سړې د یوې ذرې نیکی اوکړی نو هغه به وینې او چه څوك د ذرې برابر بدی اوکړی هغه به وینی. دا حدیث په بخاری شریف او مسلم کښې هم دې.(۱)

اوپه حدیث کښې دا الفاظ دی چه اسونه درې قسمه دی د رحمن د شیطان او د انسان. په دې کښې دی چه شیطانی اسونه هغه دی کوم چه د منډې د پاره په شرطونو او جوارئی د پاره وی. او انسان آس هغه دې چې د خپل سورلئ دپاره ئې ساتلې وی. (۲) د اکثرو علماؤ قول دې چه غشی ویشتل د اسونو د سورلئی نه بهتر دی. امام مالك رحمه الله د دې خلاف دې خود جمهورو قول قوی دې ځکه چه په حدیث کښې هم راغلی دی. حضرت معاویه بن خدیج رضی الله عنه حضرت ابوذر رضی الله عنه له لاړو نو هغه وخت هغه د خپل اس خدمت کولو تپوس ئې اوکړو چه ستا دا اس په څه کار راځی؟ وئې فرمائیل چه زما د دې خناور دعا زما په حق کښې قبلوله شوې ده. وئیل خناور اودعا؟ وئې فرمائیل او د الله ﷻ قسم اس هر سحر دعا کوی چه اې الله تعالی! تا زه خپلو بندیګانو کښې بنده ته حواله کړې یم ته ما د ده د ټول اهل نه د مال نه اود اولاد نه زیات جوړکړې او ده سره مې اوساتې(۳) په یو مرفوع حدیث کښې دی چه هر یو عربی اس ته هره ورځ د دوو دعاګانو کولو اجازت ملاویږی(۴)حضورﷺ فرمائی چه د اسونو په تندوکښې بنیګړه ترلې شوې وی د اسونو والا د الله ﷻ په امداد کښې وی. دا په نیك نیتئی سره د جهاد په اراده ساتونکې انسان دې لکه څنګه چه یوسړې هر وخت خپل لاس وراندې کوی اوخیرات کوی(۵) ددې باره کښې نورهم ډیراحادیث دی. په صحیح بخاری شریف کښې د بنیګړې تفصیل دې اجر او غنیمت.(۶)

فرمائی دې سره ستاسو دښمنان ویریدونکی او هیبت وهونکی دی د دې ظاهری مقابلې د دښمنانو نه علاوه نور دښمنان هم دی یعنی بنوقریظه، فارس او د محلونو شیطانان. په یو مرفوع حدیث کښې هم دی چه دې نه مراد پیریان دی.په یو منکر حدیث کښې دی چه په کوم کور کښې یو آزاد اس وی هغه کور به چرې هم بدنصیب نه وی. خود دې روایت نه سند صحیح دې او نه دا صحیح دې. اود دې نه مراد منافقت هم اخستې دې او هم دغه قول ډیر مناسب هم دې. لکه چه د الله ﷻ فرمان دې ﴿ وَمِمَّنْ حَوْلَكُمْ مِنَ الْأَعْرَابِ﴾ستاسو څلور وارو طرفو ته کلی وال او مدنی منافقان دی کوم چه تاسو نه پیژنئی خو مونږ د هغوی نه ښه واقف یو. بیا ارشاد دې چه په جهاد کښې تاسو څه خرچ کړئی د دې به پوره بدله بیامومئی. په ابوداؤدکښې دی چه د یوه درهم ثواب به اووه سوه دزجې زیات ملاویږی.(۷) لکه چه آیت ﴿مَثَلُ الَّذِينَ يُنْفِقُونَ﴾ کښې دی. ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه اول خوبه رسول اللهﷺ صرف مسلمانانوته د

---

۱) صحیح بخاری کتاب الجهاد باب الخیل للاثة: ۲۸٦۰، صحیح مسلم:۹۸۷، ابن حبان:٤٦٧٢، بیهقی:٤/١١٩.

۲) احمد:١/٣٩٥،، الترغیب الترهیب: ١٨٧٧، مجمع الزوائد:٥/٢٦٠.

۳) احمد:٥/١٦٢.

٤) نسائی کتاب الخیل باب دعوة الخیل:٣٦٠٩، وسنده صحیح، احمد:٥/١٧٠.

٥) طبرانی:٥٦٢٣وسنده حسن.

٦) صحیح بخاری کتاب الجهاد باب الجهاد ماض مع البروالفاجر:٢٨٥٢، صحیح مسلم:١٨٧٣، ترمذی:١٦٩٤، ابن ماجه:٢٣٠٥

٧) ابوداؤد کتاب الجهاد باب فی تضعیف الذکر فی سبیل الله عزوجل:٢٤٩٨.

خیرات صدقات حکم ورکولو کله چه دا آیت ﴿وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ يُوَفَّ اِلَيْكُمْ﴾ نازل شو نو حضور ﷺ اوفرمائیل چه د کوم دین هم وی او سوال اوکړی نو هغه سره ښیګړه کوئې[1] دا روایت غریب دې او په ابن ابی حاتم کښې دې.

| |
|---|
| وَاِنْ جَنَحُوْا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا وَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ؕ |
| اوکه چرې مائله شي هغوئ ۔ صلحې ته ۔ نو مائله شه ۔ هغې صلحې ته ۔ او بروسه اوکړه ۔ په الله ۔ |
| اوکه دوی روغې ته غاړه کیخوده نو تاسو روغه اوکړئ او(په نیتجه دروغه کښې) په الله بهروسه اوکړئ |
| اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ۝ وَاِنْ يُّرِيْدُوْٓا |
| بیشکه ۔ چې هم هغه ۔ هرڅه اوریدونکې دې ۔ او په هرڅه پوهه دې ۔ اوکه چرې ۔ اراده اوکړی هغوئ |
| بیشکه الله ﷻ دهرڅه اوریدونکې او په هرڅه عالم دې ۔ اوکه (په روغه کولو کښې) دوی تاسره د |
| اَنْ يَّخْدَعُوْكَ فَاِنَّ حَسْبَكَ اللّٰهُ ؕ هُوَ الَّذِيْٓ اَيَّدَكَ |
| چې دهوکه درکړی تاته ۔ نو بیشکه کافي دې تالره الله ۔ الله ۔ هغه ذات دې ۔ چې مضبوط ئې کړې ته |
| دهوکې اراده لری نو (د دوی د دهوکې نه مه یریږه) الله ﷻ ستا دپاره کافي دې ۔ الله هغه ذات دې چه |
| بِنَصْرِهٖ وَبِالْمُؤْمِنِيْنَ ۝ وَاَلَّفَ بَيْنَ قُلُوْبِهِمْ ؕ لَوْ |
| په مدد خپل سره ۔ او په مومنانو سره ۔ او مینه ئې واچوله ۔ په منځ ۔ د زړونو دهغوئ کښې ۔ که چرې |
| په خپل مدد او په مسلمانانو سره ئې ته مضبوط کړې ۔ او د دوی په زړونو کښې ئې محبت اچولې دې ۔ که |
| اَنْفَقْتَ مَا فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا مَّآ اَلَّفْتَ بَيْنَ |
| په زمکه چه څومره څه دی دا ټول تا خرچ کړې وې نو(د دې باوجود به هم)، تا د دوی د زړونو په مینځ |
| خرچ کړې وې تا ۔ هغه څه ۔ چې په زمکه کښې دی ۔ ټول ۔ نومینه به نه وه پیدا کړې راوستې تا ۔ په منځ |
| قُلُوْبِهِمْ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ اَلَّفَ بَيْنَهُمْ ؕ اِنَّهٗ |
| په زړونو دهغوئ کښې ۔ لیکن ۔ الله ۔ محبت پیدا کړو ۔ په منځ دهغوئ کښې ۔ بې شکه چې هغه |
| مینه نه وه اچولې دزړونو دهغوئ ۔ بلکه الله ﷻ د دوی (د زړونو) په مینځ کښې محبت واچولو ۔ بیشکه الله |
| عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ۝ |
| غالب دې ۔ خاوند د حکمت دې ۔ |
| (په اراده) غالب دې او صاحب دحکمت دې ۔ |

**قوله تعالی:: وَاِنْ جَنَحُوْا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا**

**کافرانوسره دضرورت په وخت کښې دصلح حکم:** د الله ﷻ ارشاد دې چه کله دیو قوم د خیانت ویره وی نو په برابرئی سره ئی خبرکړئی معاهده ختمه کړئی اود جنګ خبرورکړئی. دې نه پس که هغوی په جنګ کولو باندې راضی وی نو په الله ﷻ باندې بهروسه اوکړه او جهاد شروع کړه اوکه هغوی بیا په صلح باندې راضی شی نو ته هم صلح او صفائی اوکړه. هم د دې آیت په تعمیل کښې د حدیبیه په درځ

---

[1] وسنده حسن.

رسول الله ﷺ دمکې مشرکانو سره د نهوکالو د پاره صلح اوکړه چه په څو شرطونو باندې وه. د حضرت علی رضی الله عنه نه نقل دی چه رسول الله ﷺ او فرمائیل چه زر به اختلاف پیداکیږی یا پس نوکه تانه کیږی نو صلح اوکړه(۱) مجاهد رحمه الله وائی دا د بنو قریظه باره کښې نازل شوې خو په دې کښې تامل دې ټوله قصه د بدر ده.د ډیرو بزرګانو خیال دې چه د سورة براءت آیت سیف ﴿قَاتِلُوا الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ﴾ سره منسوخ دې. خو په دې کښې هم نظر دې ځکه چه په دې آیت کښې د جهاد حکم په طاقت او استعداد باندې دې. خود دېسمن د زیاتی په وخت کښې صلح کول بې شك او شبهې جائز ده لکه چه په دې آیت کښې دی او څنګه چه د حدیبیه صلح رسول الله ﷺ اوکړه. نو هیڅ خلاف یا څه خصوصیت یا منسوخیت نشته. والله اعلم. بیا فرمائی چه په الله ﷻ باندې بهروسه ساته هغه تاله کافی دې هم هغه ستا امداد کونکې دې. که دوی دهوکه بازی کوی او څه فریب کول غواړی او په دې مینځ کښې خپل شان اوشوکت او د جنګ وسله زیاتول غوړای نوته فکر مه کوه الله ﷻ ستا طرفدار دې هغه ستا د پاره کافی دې د هغه د مقابلې هیڅ څوك نشته.

**دمسلمانانویو بل سره محبت د الله ﷻ رحمت دې**::بیا د خپل یو اعلی نعمت ذکر کوی چه د مهاجرینو او انصارو نه نی صرف په خپل فضل باندې ستا تائید اوکړو. هغوی ته نی په تا باندې د ایمان راوړلو او تابعدارئی کولو توفیق ورکړو، ستا په امداد او ستا په نصرت باندې آماده کړل. خو دې که د زمکې خزانې خرچ کړې وې نو په هغوی کښې دې هغه مینه او محبت نه شو پیداکولې کوم چه الله ﷻ پخپله اوکړو. د هغوی د صدو زړې دېښمنئی نی لرې کړې. اوس او خزرج به د انصارو په قبیلوکښې د جهالت په زمانه کښې ښه توری چلولې. د ایمان نور دغه دېښمنئی په محبت کښې بدلې کړې. لکه چه د قرآن پاك بیان دې دالله ﷻ هغه احسان یادکړئی چه تاسوپخپل مینځ کښې د یوبل دېښمنان وئې هغه ستاسو زړونه یوځائ کړل او په خپل فضل سره نی تاسو رونړه رونړه جوړکړئې. تاسو د دوزخ غاړې ته رسیدلې وې خوهغه تاسو بچ کړئې. الله ﷻ ستاسودهدایت د پاره داسې خپلې خبرې بیانوی. (۲) په بخاری او مسلم شریف کښې دی چه د حنین د غنیمت د تقسیم په وخت کښې رسول الله ﷺ انصارو ته اوفرمائیل اې انصارو! آیا ما د ګمراهئی د حالت نه د الله ﷻ په عنایت سره تاسو ته نیغه لار اونه خودله؟ آیا تاسوفقیران نه وئې؟الله ﷻ تاسوزماپه وجه امیران کړئې.تاسو جداجدا وې الله ﷻزماپه وجه ستاسو زړونه یوځائ کړل. د حضور ﷺ په هره خبره به انصارو وئیل بې شکه د الله ﷻ اود هغه د رسول ﷺ د دې نه هم زیات احسانونه په مونږ باندې دی(۳) غرض داچه خپل دا انعام او اکرام بیانولوسره نی دخپل عزت اوحکمت اظهار اوکړو چه هغه اوچت ذات دې دهغه نه امید ساتونکې نااميده کیږی نه.په هغه باندې توکل کونکې آباد وی هغه په خپلوحکمونوکښې حکیم دې. ابن عباس رضی الله عنه فرمائی د خپلوئی رشتې ماتیږی اود نعمت ناشکری کولې شی خو د زړونو د تقارب او نزدیکت په شان بل څه څیز نه دې لیدلې شوې.
د الله ﷻ رب العزت فرمان دې که تا د زمکې خزانې هم ختمې کړې وې نو ستا په وس کښې نه وه چه د دوی زړونه دې یوځائ کړې وې.شاعر وائی تاسره دهوکه کونکې ستانه بې پرواهی کونکې ستا رشته دار نه دی بلکه ستاحقیقی رشته دارهغه دی چه ستاپه آوازلبیك وائی اوستاد دېښمنانو په سرټیټی کښې تاسره وی.او شاعر وائی چه ماخو ښه په یو ځائ ازمیښت کړل اومې لیدل چه د رشته دارئی نه هم زیات تګ راتګ دې. امام بیهقی رحمه الله فرمائی چه ماته دا نه ده معلومه چه دا ټول قول د

---

۱) احمد:۱/۹۰. (مسنداحمد)
۲) ۳/آل عمران:۱۰۳.
۳) صحیح بخاری کتاب المغازی باب غزوة الطائف فی شوال سنة ثمان: ۴۳۳۰، صحیح مسلم:۱۰۶۱.

حضرت ابن عباس ﷺ دي یا د هغه نه لاندې په راویانوکښې د چا دې. ابن مسعود ﷺ فرمائي د هغوی دا محبت د الله ﷻ په لارکښې وو چه د توحید او سنت په بناء باندې وو. (۱) ابن عباس ﷺ فرمائي رشته دارئي هم ماتيږي د احسان هم ناشکري کولې شي خوچه کله د الله ﷻ د طرف نه زړونه ملاويږي هغه څوک جدا کولې نه شي. بیا هغوی د دې جملې تلاوت اوکړو(۲)عبده بن ابی لبابه ﷺ فرمائي زما حضرت مجاهد رحمه الله سره ملاقات اوشو نو هغوی ماسره لاس ملاؤکړو وئې فرمائیل کله چه دوه کسان د الله ﷻ په لارکښې مینه لرونکي خپل مینځ کښې ملاويږي او يو بل سره په رونړتندی لاس ملا ؤ وي نو د دوارو ګناه داسې رژيږي لکه د ونو اوچې پانړې. ما وئیل چه دا کار خو ډیر آسان دې وئې فرمائیل داسې مه وایه چه مینه هغه ده د کومې باره کښې چه الله ﷻ فرمائي که ته د زمکې خزانې هم خرچ کړې نوبیا هم داستا د وس کار نه دې چه په زړونوکښې محبت اومینه پیداکړې.د هغه دې فرمان سره ماته یقین اوشو چه دې زما نه ډیر پوهه دې. ولید بن ابی مغیث وائي ما د حضرت مجاهد رحمه الله نه واوریدل چه کله دوه مسلمانان په خپل مینځ کښې ملاويږي او لاس ملا ؤ وې نو د هغوی ګناه معاف کیږي. ما تپوس اوکړو صرف په لاس ملاولو؟ نو هغوی اوفرمائیل چه ایا تاسو د الله ﷻ فرمان نه دې اوریدلې؟ بیا هغوی د دې جملې تلاوت اوکړو. نو حضرت ولید رحمه الله اوفرمائیل ته زما نه ډیر لوئ عالم ئې. عمیر بن اسحاق وائي چه د خلقو نه د ټولونه وړاندې کوم څیز اوچتولې شي هغه به مینه اومحبت وي. په طبراني کښې دي رسول ا لله ﷺ فرمائي چه مسلمان کله مسلمان رور سره لاس ملا ؤ وي نو د دوارو ګناه داسې رژيږي لکه د ونې اوچې پانړې په تيزه هوا. د هغوی ټول ګناهونه معاف کولې شي که هغه د سمندر د زګ په شان هم وي.(۳)

| |
|---|
| يَآيُّهَا النَّبِيُّ حَسْبُكَ اللّٰهُ وَمَنِ اتَّبَعَكَ |
| اے نبي / کافي دي تالره الله / اوهغه چاله / اچي پیروي کوي ستا |
| اای پیغمبرا ستا دپاره الله ﷻ کافي دي او هغه څوک چه په مؤمنانو |
| مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۶۴﴾ يَآيُّهَا النَّبِيُّ حَرِّضِ الْمُؤْمِنِيْنَ عَلَى الْقِتَالِ ؕ اِنْ يَّكُنْ |
| دمومنانونه / اے نبي / تیز کړه مومنان / په جنګ باندې / که چرې وي |
| کښې ئې ستا تابعداري کړې ده / اای پیغمبرا مؤمنان د جهاد په تیارئ باندې تیز کړه / انوکه په |
| مِّنْكُمْ عِشْرُوْنَ صٰبِرُوْنَ يَغْلِبُوْا مِائَتَيْنِ ۚ وَاِنْ |
| ستاسو نه / شل کسان / صابران / انو غالب به راځي هغوئ / په دووسوؤکسانوباندې / اوکه چرې |
| شل صابران کسان وي هغوی به په دوه سوو (کافرو) کسانو باندې غلبه کوي / اوکه په تاسو کښې |
| يَّكُنْ مِّنْكُمْ مِّائَةٌ يَّغْلِبُوْٓا اَلْفًا مِّنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا |
| وی / ستاسو نه / سل کسان / انوغالب به راځي / په زرو کسانو باندې / دهغه کسانونه / اچې کافران دي |
| سل کسان (مومنان) وي نو هغوی به د کافرانو په زرو کسانو باندې غلبه بیامومي |

(۱) حاکم: ۳۲۹/۲ بلفظ آخر وسنده صحیح.

(۲) ایضًا.

(۳) صحیح مسلم کتاب الامارة باب ثبوت الجنة للشهید: ۱۹۰۱.



| بِاَنَّهُمْ | قَوْمٌ | لَّا يَفْقَهُوْنَ۝ | اَلْئٰنَ | خَفَّفَ اللّٰهُ | عَنْكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| ځکه چې هغوی | داسې قوم دي | چې نه پوهيږي | اوس | اسپك كړو پېتي الله | ستاسو نه |

دا حکم په دې وجه دې چه دا ناپوهه خلق دي ا اوس الله ﷻ په تاسو باندې سپکوالې (آسانوالې) اوکړو

| وَعَلِمَ | اَنَّ | فِيْكُمْ | ضَعْفًاؕ | فَاِنْ | يَّكُنْ | مِّنْكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او معلومه ده هغه ته | چې بيشکه | په تاسو کښې | کمزوري ده | پس | که وي | ستاسو نه |

او په علم ظاهري سره الله ﷻ ته معلومه شوه چه په تاسو کښې کمزوري ده انو که په تاسو کښې

| مِّائَةٌ | صَابِرَةٌ | يَّغْلِبُوْا | مِائَتَيْنِۚ | وَاِنْ يَّكُنْ | مِّنْكُمْ | اَلْفٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| سل کسان | صابران | انو غالب به راځي | په دوؤ سوؤ کسانو باندې | او که وي | ستاسو نه | ازر کسان |

سل صابران کسان وي هغوی به په دوه سوو باندې غلبه کوي ا او که په تاسو کښې زر کسان (صابران)

| يَّغْلِبُوْٓا | اَلْفَيْنِ | بِاِذْنِ اللّٰهِؕ | وَاللّٰهُ | مَعَ الصّٰبِرِيْنَ۝ |
|---|---|---|---|---|
| نو غالب به راځي | په دوؤ زرو باندې | په حکم د الله سره | او الله | د صابرانو ملګرې دې |

وي نو هغوی به د الله ﷻ په حکم سره په دوؤ زرو کسانو باندې غلبهٔ کوي ا او الله د صبر کونکو سره دې

**قوله تعالی: يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ حَرِّضِ الْمُؤْمِنِيْنَ عَلَى الْقِتَالِؕ**

**دجهاد ترغيب اود صحابه کرامو جهاد شوق:-** الله ﷻ خپل پيغمبر ﷺ ته او مسلمانانو ته د جهاد ترغيب ورکوی. او هغوی ته تسلي ورکوی چه هغوی به په دښمنانو باندې غالب کوی سره د دې که هغوی د سازوسامان او د لښکرو والا وی او که مسلمانان بې سروسامان وی او يو موټي وی. الله ﷻ کافي دې او چه څومره مسلمانان تاسره وی هم هغه بس دی. بيا خپل نبي ﷺ ته حکم ورکوی چه مؤمنانو ته د جهاد رغبت ورکوه. حضور ﷺ به د صفونو په جوړولو کښې دمقابلې په وخت کښې برابر د فوځيانو زړونه لوړول. دبدر په ورځ نې اوفرمائيل پاسئ هغه جنت حاصل کړئ د کوم پلنوالې چه د آسمانونو اوزمکې په شان دی. حضرت عمير ﷺ بن حمام وائي دومره پلنوالې؟ ونې فرمائيل او هم دومره هغه ونيل واه واه. حضور ﷺ اوفرمائيل چه دا دې په کومه اراده سره اووئيل؟ ونيل په دې اميد چه الله ﷻ به ما هم جنتي کړي. حضور ﷺ اوفرمائيل چه زما پيشن ګوئي ده ته جنتي ئې. هغه پاسې اود دښمن طرف ته وړاندې کيږي د خپلې توري تيکي ماتوی څه کهجورې چه ورسره وې هغه نې خوړل شروع کړې بيا نې اوفرمائيل چه دا خوړل اودلته حصاريدل دا هم په ما ډير ګران دی. هغه د لاس نه غورزوی او حمله کوی اود زمرې په شان په دښمنانو کښې ورننوتلو اود تورې مهارت خودلو سره د کافرانو ستهونه وهي اود الله ﷻ په لارکښې شهيد کيږي. رضی الله عنه وارضاه. ابن المسيب ﷺ او سعيدبن جبير ﷺ فرمائي داآيت دحضرت عمر ﷺ داسلام راوړلو په وخت کښې نازل شو کله چه د مسلمانانو شمير پوره څلوينښت شو. خو په دې کښې لږ شان نظر دې ځکه چه دا آيت مدنی دې اود حضرت عمر ﷺ د اسلام راوړو واقعه په مکه معظمه کښې وه. د حبشې د هجرت نه پس اود مدينې د هجرت نه وړاندې. والله اعلم بيا الله ﷻ مؤمنانو ته زيرې ورکوی اوحکم فرمائي چه ستاسو شل به د دې کافرانو نه په دوو سوو غالب راځي. سل به په زرو باندې غالب راځي. غرض دا چه يو مسلمان د لسو کافرانو د مقابلې دې. بيا خو حکم منسوخ شو خو زيرې باقي دې. کله چه دا حکم په مسلمانانو باندې لږ شان ګران شو چه يو په لسه مقابله کښې لږ شان غلې شو نو الله ﷻ کمې اوکړو او ونې فرمائيل چه اوس الله ﷻ بوج سپک کړو

الخ. خو چه خومره شمیر کم شو هم دومره صبرناقص شو(۱) اول حکم وو چه شل مسلمانان به د دوو سوو کافرانو نه نه روستوکیږی اوس دا اوشو چه سل به د دوو سوو نه نه تختی(۲)نومشکل کیدو باندې ضعیف والي اوکمزوری الله ﷻ قبوله کړه نو کمې نی اوکړو چه په دوچنده تعداد کښې به د کافروسره په جنګ روستو کیدل نشته اود دې نه د زیاتی په وخت کښې ډډې ته کیدل جرم نه دې. ابن عمرؓ فرمائی دا آیت زمونږ صحابه کرامو باره کښې نازل شوې دې. حضورﷺ دا اولوستلو او وئی فرمائیل چه ږومبې حکم اوچت کړې شو.(۳)

| مَا كَانَ | لِنَبِيٍّ | أَنْ يَّكُوْنَ | لَهٗٓ | أَسْرٰى | حَتّٰى | يُثْخِنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نه دې مناسب | ا یونبی لره | ا چی وی | ا هغه سره | ا قیدیان | ا ترهغې پورې اچی ریزمریزکړی | ا |
| دهیڅ پیغمبردپاره دا جائز نه دی چه دده سره قیدیان وی ا تردې چه دې ئې په زمکه کښې وینه توی | | | | | | |

| فِي الْأَرْضِ ط | تُرِيْدُوْنَ | عَرَضَ الدُّنْيَا ۖ | وَاللّٰهُ | يُرِيْدُ الْاٰخِرَةَ ط | وَاللّٰهُ | عَزِيْزٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په زمکه کښې | ا تاسو غواړئ ا | اسباب ددنیا | ا اوالله | ا غواړی آخرت | ا اوالله | ا غالب دې |
| کړې ا تاسو د دنیا د سامان اراده لرئ ا او الله ﷻ (ستاسو دپاره) د آخرت اراده لری ا او الله غالب دې | | | | | | |

| حَكِيْمٌ ۝ | لَوْلَا | كِتٰبٌ | مِّنَ اللّٰهِ | سَبَقَ | لَمَسَّكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| حکمت والا دې ا که چری نه وې ا الیکلې حکم ا د طرفه دالله نه امخکښې ا نو خامخا به رسیدلې وو تاسو نه | | | | | |
| صاحب د حکمت دې ا که چرته د الله ﷻ د طرفه د وړاندې نه فیصله نه وه شوې (چه تاسو ته به په دنیا کښې عذاب نه درکوم) | | | | | |

| فِيْمَآ | أَخَذْتُمْ | عَذَابٌ | عَظِيْمٌ ۝ | فَكُلُوْا | مِمَّا |
|---|---|---|---|---|---|
| په هغه څیزکښې ا چې اغستې دې تاسو ا | عذاب | الوئ | ا | پس خورئ ا | دهغه مال نه |
| نو تاسو ته به په هغه فدیه اخستلو باندې لوئې عذاب رسیدلې وو انو تاسو چه په غنیمت کښې څه | | | | | |

| غَنِمْتُمْ | حَلٰلًا طَيِّبًا ۖ | وَّاتَّقُوا اللّٰهَ ط | إِنَّ | اللّٰهَ |
|---|---|---|---|---|
| چې په غنیمت کښې اغستې دې تاسو ا | حلال پاك ا | اواویریږئ ا دالله نه | ا بیشکه | چې الله ا |
| حاصل کړې دی نو هغه حلال او پاک ګنړئ او خورئ ا اود الله ﷻ نه ویریږئ ا بیشکه الله ﷻ | | | | |

| غَفُوْرٌ | رَّحِيْمٌ ۝ |
|---|---|
| بښونکې | ا مهربان دې ا |
| بښونکې مهربان دې ا | |

**قوله تعالی:: مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَّكُوْنَ لَهٗٓ أَسْرٰى**

**جنګی قیدیانواود بدرد قیدیانومتعلق مشوره:-** په مسنداحمدکښې دی چه د بدر د قیدیانوباره کښې رسول الله ﷺ د صحابه کرامو ﷺ سره مشوره اوکړه چه الله ﷻ دا ستاسو په قبضه کښې درکړی دی. او واتې څه اراده مو ده؟ حضرت عمرؓ پاسیدو او عرض نی اوکړو د دوی ستونه والوزوئی. حضورﷺ د

---

۱) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الانفال باب (الآن خفف الله عنکم وعلمان فیکم ضعفا...):۴۶۵۳.
۲) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الانفال باب (یاایهاالنبی حرض المؤمنین علی القتال) : ۴۶۵۲.
۳) ابن مردویه ، حاکم: ۲۳۹/۲مختصرًا. (مستدرك حاکم)

هغه نه مخ واړولو او بیانې اوفرمائیل چه الله ﷻ دوی ستاسو په قبضه کښې درکړی دی دوی د پرون پورې ستاسو رورولنی کښې وو.بیا حضرت عمر﷛ اودریدو او خپل جواب ئې سردوباره کړو حضور ﷺ بیا مخ واړولو او هم هغه ئې اوفرمائیل. دې ځل حضرت ابوبکر﷛ اودریدو او عرض ئې اوکړو یارسول الله ﷺ! زمونږ په رائې کښې خو ته دوی معاف کړه اود دوی نه فدیه واخله او آزاد ئې کړه. اوس د حضور ﷺ دمخ مبارك نه د غم نښې لاړې او عام معافي اوکړه او فدیه ئې ترې واخسته او ټول ئې آزاد کړل(۱)په دې باندې الله ﷻ دا آیت نازل کړو.هم د دې سورة په شروع کښې دحضرت ابن عباس﷛ روایت تیرشوې دې. په صحیح مسلم کښې هم د دې په شان حدیث دې چه دبدر په ورځ حضور ﷺ معلومه کړه چه ددې قیدیانو باره کښې تاسو څه واینې؟ حضرت ابوبکرصدیق﷛ عرض اوکړو یارسول الله ﷺ! دا ستا قوم دې تاسو مشران ئې که دوی ژوندی پریخودې شی په دوی باندې توبه اوکړې شی نو څه عجیبه ده چه صبا د الله ﷻ په دوی باندې هم مهربانی اوشی خو حضرت عمر﷛ وئیل یا رسول الله ﷺ! دوی ته دروغ ګنړلې تاسو حکم اوکړئی چه د دوی سټونه اووهلې شی. حضرت عبدالله بن رواحه ﷛ اووئیل یارسول الله ﷺ!دې میدان کښې ډیرې ونې دی اُوراولګوئی اُودوی په کښې او سوزوئی ابن عباس ﷛ ته ده اووئیل چې صله رحمی دې کټ کړله. حضور ﷺ خاموش پاتې شو پاسیدو او چاته ئې هیڅ جواب ورنه کړو. په خلقو کښې هم د دې دریواړو بزرګانو رائې ملګرتیا پیدا شوه. په دې کښې حضور ﷺ بیا تشریف راوړو او وئې فرمائیل بعضې زړونه په نرمیدو نرمیدو کښې د پئیونه هم زیات نرمیږی او بعضې زړونه په سختیدو سختیدو کښې دومره سخت شی چه د کاڼړی نه هم سختیږی.

**د ابو بکر صدیق ﷛ او د عمرفاروق ﷛ عظیم مثال::** اې ابوبکر﷛! ستا مثال خود حضرت ابراهیم ﷺ په شان دې چه الله ﷻ ته عرض کوی زما تابعدار خو زما تابعدار دی خوزما مخالف هم ستا د معافئی او بښنې لائق دی (۲) او ستا مثال د حضرت عیسی ﷺ په شان دې چه وئیل اې الله ﷻ که ته دوی ته عذاب ورکوې نو ستا بندیګان دی اوکه ته دوی اوبښې نو ته عزیز او حکیم ئې. (۳)او اې عمر﷛! ستا مثال د حضرت نوح ﷺ په شان دې چا چه خپل قوم ته خیرې اوکړې چه اې الله تعالی! په مخ د زمکې د کافرو یوکور هم باقی پاتې نه کړې. (۴) واورئی تاسو غریبانان ئې قیدیانوکښې یوکس هم بغیرفدیه پرینږدئی ګنی ددوی سټونه اووهئی.په دې باندې ابن مسعود﷛ درخواست اوکړو یارسول الله ﷺ! مګرسهیل بن بیضاء څکه چه ده به د اسلام ذکر کولو په دې باندې حضور ﷺ خاموش شو. والله زه ټول وخت په ویره کښې ووم چه چرته په ما د آسمان نه کاڼړی رااونه وریږی تردې چه حضور ﷺ اوفرمائیل مګر سهیل بن بیضاء هم د ده ذکر په دې آیت کښې دې داحدیث په ترمذی او مسند احمد وغیره کښې دې(۵)په دې قیدیانوکښې عباس﷛ هم وو هغه یو انصاری قید کړې وو د انصارو خیال وو چه دې قتل کړئی حضور ﷺ ته هم دا حال معلوم وو. حضور ﷺ فرمائیل چه د شپې د دې خیال د وجه ماته خوب نه راتلو. په دې باندې حضرت عمر﷛ اوفرمائیل که تاسو اجازت راکوئی نو زه به انصارو له لاړشم حضور ﷺ اجازت ورکړو نو حضرت عمر﷛ انصارو له لاړو اووئې وئیل چه عباس پریږدئی هغوی اووئیل والله مونږ به دې نه پریږدو.هغه اووئیل که درسول الله ﷺ رضامندی په دې کښې وی؟هغوی وئیل که داسې وی نو ته دې بوزه مونږ ئې هم داسې پریږدو. اوس حضرت عمر﷛ هغه ته اووئیل عباس!

(۱) احمد:۲۴۳/۳، مجمع الزوائد:۸۷/۶.
(۲) ۱۴/ابراهیم:۳۶.
(۳) ۵/المائدة: ۱۱۸.
(۴) ۷۱/نوح:۲۶.
(۵) ترمذی کتاب تفسیر القرآن باب ومن سورة الانفال :۳۰۸۴، احمد:۳۸۳/۱، حاکم:۲۱/۳، مسندابی یعلی:۲۵۱/۲.

مسلمان شه والله ستا اسلام راوړل ماته د خپل پلار د اسلام راوړلو نه هم زیاته خوشحالي راکوي. په دې وجه چه رسول الله ﷺ به ستا په اسلام راوړو باندې خوشحاله شي. اود قیدیانوباره کښې حضور ﷺ د حضرت ابوبکر ﷺ سره مشوره کړې ده نو هغوی اوفرمائیل چه دا ټول هم زمونږ د خاندان او قبیلې خلق دي دوی پریږده. دحضرت عمر ﷺ نه چه کله مشوره واخستې شوه نو هغه ونیل ټول قتل کړئی. آخر حضور ﷺ فدیه واخسته او ټول ئې آزاد کړل([1])حضرت علی ﷺ فرمانی چه حضرت جبرائیل ﷺ راغلو او وئې فرمائیل چه خپلو صحابه کرامو ته اختیار ورکړه چه په دې دوو خبروکښې یوه خوښه کړي که غواړي نوفدیه دې واخلي اوکه غواړي نو قتل دې کړي. خویاد ساته چه فدیه اخستوکښې به وړاندې کال په دوی کښې دومره شهیدان کیږي. صحابه کرامو ﷺ ونیل مونږ ته منظور ده. او مونږ فدیه اخلو اوپریږدو ئې([2])خودا حدیث غریب دې. ددې بدر دقیدیانو باره کښې رسول الله ﷺ اوفرمائیل اې صحابه کراموا که خوښه مووی نو قتل ئې کړئی یا دوی نه فدیه واخلئی او آزادئی کړئی خو په دې صورت کښې ستاسو دومره کسان شهیدان کیږي. په دې اویاؤ شهیدانوکښې د ټولو نه آخری حضرت ثابت بن قیس ﷺ وو چه په جنګ یمامه کښې شهیدشو. دا روایت د حضرت عبیده ﷺ نه مرسلاً هم مروی دې. والله اعلم.

**دکافرانو قیدیانونه فدیه اخستل هم څه خلاف شرع کار نه وو::** که د مخکې نه دالله ﷻ په کتاب کښې ستاسو د پاره د غنیمت مال حلال نه وولیکلې او ترکومې مونږ نه بیانولو نو ترهغه وخته پورې به نه په عذاب کیږئی نو که زمونږ داسې قانون نه وو نو چه کوم د فدیه مال تاسو اخستې په هغې به په تاسو ډیر درووند عذاب کیدو. دغه شان د وړاندې نه الله ﷻ مقررکړې وه چه د بدر یو صحابی به الله ﷻ نه په عذاب کوی د هغوی دپاره د بښنې لیك شوې دې. په ام الکتاب کښې ستاسو د پاره د مال غنیمت حلت لیکلې شوې دې. نود غنیمت مال ستاسود پاره حلال طیب دې په شوق ئې خورئی څکئی او په خپل کارکښې راولئی. اول لیکلې شوی وو چه د دې امت د پاره دا حلال دې. هم دغه قول د امام ابن جریر ﷫ ډیر خوښ دې اوهم د دې شهادت د بخاری اومسلم د حدیث نه ملاویږي. حضور ﷺ فرمانی چه ماته پنځه څیزونه راکړې شوی دی چه زما نه وړاندې یو نبی ته نه وو ورکړې شوی. د پوره میاشتې په فاصله باندې زما امداد په رعب سره اوکړې شو. زما د پاره زمکه پاکه اود عبادت ځائ جوړکړې شو. په ما باندې غنیمتونه حلال کړې شو چه زما نه اول په چا باندې هم حلال نه وو ماته شفاعت راکړې شو. هر نبی به خاص خپل قوم ته لیګلې شو خوزه د عامو خلقو طرف ته پیغمبر جوړکړې لیګلې شوې یم([3]) حضور ﷺ فرمانی چه یو تور سر والا انسان دپاره سوا زما نه غنیمت نه دې حلال کړې([4]) نو صحابه کرامو د دې بدر د قیدیانونه فدیه واخسته. ابوداؤد کښې دی چه دهریو نه څلور سوه درهمه د جنګ د تاوان په توګه واخستې شو([5]) دجمهورو علماء کرامو مذهب دا دې چه د وخت امام ته اختیار دې که غواړي نو کفار قیدیان دې قتل کړي لکه څنګه چه د بنو قریظه قیدیانوسره حضور ﷺ اوکړه. اوکه غواړي نو په بدله کښې دې مال واخلي او پریږدې دی. لکه څنګه چه د بدر قیدیانو سره حضور ﷺ اوکړه. یا دې د مسلمانانو قیدیانو په بدله کښې پریږدی لکه چه حضور ﷺ د قبیله سلمه ابن اکوع بوډ

---

[1]) حاکم: ۳۲۹/۲ مختصرًا امام حاکم او امام ذهبی دې ته صحیح ونیلې دې. وسنده حسن.

[2]) ترمذی کتاب السیرباب ماجاء فی قتل الاساری والفداء: ۱۵۶۷، دارقطنی: ۲۲/٤، مسندالبزار: ۱۷٦/۲، السنن الکبری للنسائی: ٦٨٦٢. (ترمذی نسائی وغیره)

[3]) صحیح بخاری کتاب التیمم باب ۱ ص۳۳۵، صحیح مسلم: ۵۲۱، احمد: ۳۰٤/۳، ابن حبان: ٦٣٩٨.

[4]) ترمذی کتاب تفسیر القرآن باب ومن سورة الانفال: ۳۰۸۵ وهوصحیح، السنن الکبری للنسائی: ۱۱۲۰۹، ابن حبان: ٤٨٠٦.

[5]) ابوداؤد کتاب الجهاد باب فی فداء الاسیر بالمال: ۲٦۹۱ وسنده حسن، حاکم: ۱٤٠/۳، بیهقی: ٦٨/۹.

پنځه او یوه جینئی مشرکانوله د مسلمانانو قیدیانو په بدله کښې ورکړه (۱) اوکه غواړي نو هغه دې غلامان اوساتی هم دغه مذهب د امام شافعی رحمه الله او د علماؤ د یوې ډلې دې اونورو په دې کښې اختلاف هم کړې دې دلته د هغې د لیکلو ځای نشته (نوروکتابونوته مراجعه اوکړئی).

**د جنګي قیدیانو سره د سلوك په باره کښې د امام اختیار**

مسلك حنفی:- په دې باندې د ټولو عالمانو اتفاق دې چه امام وخت ته اختیار دې که هغه قیدیان قتل کړی اوکه د هغوی نه غلامان جوړوی البته دا چې بغیر د معاوضې نه ئې پریږدی نو د احنافو په نیز دا بیخي جائز نه ده او که عوض ترې واخلی او پریږدی ئې نو دامام ابوحنیفه رحمه الله نه دا منقول دی چه دا هم جائز نه ده البته د سیر کبیر په یو روایت کښې دی که د مسلمانانو ضرورت وی نو په دې صورت کښې عوض واخلی او کافران قیدیان پریږدی نو دا جائز ده البته که مسلمانان د کافرانو په قید کښې وی نو د هغوی د ازادئ په بدله کښې که دوی پریږدی نو دا زمونږ د احنافو د دریواړه امامانو په نیز جائز دی (۲)

| |
|---|
| يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِّمَنْ فِيْٓ اَيْدِيْكُمْ |
| ا اے نبی ا اووایه ا هغه چاته ا چې په لاسونوستاسوکښې دی ا |
| ا اې پیغمبر! ستاسو په لاسونو (قید) کښې چه کوم قیدیان دی نو هغوی ته اووایه |
| مِّنَ الْاَسْرٰٓى ۙ اِنْ يَّعْلَمِ اللّٰهُ فِيْ قُلُوْبِكُمْ خَيْرًا يُّؤْتِكُمْ |
| دقیدیانو نه ا که معلوم شو ا الله ته ا په زړونوستاسوکښې ا څه خیر ا نودربه کړی تاسوته ا |
| که الله ﷻ ته ستاسو په زړونو کښې خیر معلوم شو (چه تاسو په اخلاص سره ایمان راوړئ) نو ستاسو |
| خَيْرًا مِّمَّآ اُخِذَ مِنْكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ؕ |
| بهتر ا دهغې نه ا چې اغستې شوی دی ا ستاسونه ا او معافی به اوکړی ا تاسوته |
| نه چه په فدیه کښې څه اخستې شوې دی دهغې نه به درته غوره درکړی او تاسوته به معافی اوکړی |
| وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۞ وَاِنْ يُّرِيْدُوْا خِيَانَتَكَ فَقَدْ |
| اوالله ابښونکې دې ا مهربان دې ا اوکه اراده لری دوئ ا دخیانت کولو تاسره ا نو بیشکه |
| او الله ﷻ بښونکې مهربان دې ا اوکه دوی تاسره د خیانت کولو اراده لری نو یقینی خبره ده |
| خَانُوا اللّٰهَ مِنْ قَبْلُ فَاَمْكَنَ مِنْهُمْ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ |
| خیانت کړې وو دوئ ا دالله سره ا مخکښې ددې نه ا نوقادرئې کړې ته ا په دوئ باندې ا اوالله ابنه پوهه دې |
| چه دوی نه وړاندې دوی دالله سره خیانت کړې وو نو الله تاته په دوی باندې قدرت درکړو ا اوالله عالم |
| حَكِيْمٌ ۞ |
| دحکمت خاوند دې ا |
| صاحب د حکمت دې ا |

(۱) د دې قسم ذکر په صحیح مسلم کتاب الاجهاد باب التنفیل وفداء المسلمین بالاساری:۱۷۵۵ کښې هم دې.
(۲) (معارف القرآن (۴/۲۸۷)-

**قوله تعالی:: إِنْ يَعْلَمِ اللَّهُ فِي قُلُوبِكُمْ خَيْرًا**
**دنیک نیتئی اواسلام په وجه په حال کښې زیاتې:** دبدرپه ورځ حضورﷺ فرمائیلي ووچه ماته یقینًا معلومه ده چه بعضې بنوهاشم وغیره په زبردستئی په دې جنګ کښې راویستلي شوی دی. د هغوی مونږسره دجنګ کولو خواهش نه وو. نو بنو هاشم مه قتل کوئې.ابوالبختری بن هشام هم مه قتل کوئې عباس بن عبدالمطلب هم مه قتل کوئې. دې خو په نه زړه باندې دې خلقو خپل ځان سره راښکلي دی. په دې باندې حذیفه بن عتبه اووئیل چه مونږ خپل پلار نیکه خپل بچی او خپل رونړه او خپل خاندان اوقبیلې قتل کوو او عبـاسؓ به پرېږدو؟والله که هغه ماته ملاؤ شو نو دهغه سټ به وهم. کله چه دا خبره رسول اللهﷺ ته اورسیده نو حضورﷺ اوفرمائیل اې ابوحفص! آیادرسول اللهﷺ د تره په مخ به توره وهې.عمرؓ فرمائی دا رومبې خل وو چه رسول اللهﷺ زه په خپل کُنیت باندې راؤبللم.عمر ؓ عرض اوکړو یارسول اللهﷺ! ماته اجازت راکړه چه زه د ابوحذیفه سټ والوزوم. والله هغه خو منافق شوې دې.ابوحذیفهؓ فرمائی والله ماته د خپلې هغه ورځ د وینا خفګان ترننه پورې دې. زه د هغې نه تراوسه پورې ویریږم. زه خو به هغه وخت آرام بیاموم په کومه ورځ چه د دې کفاره اوشی اوهغه دا ده چه دالله ﷻ په لارکښې شهید شم. نو هغه په جنګ یمامه کښې شهیدشو(۱)ابن عباسؓ فرمائی په کومه ورځ چه د بدر قیدیان راغلل په هغه شپه رسول اللهﷺ ته خوب نه ورتلو.صحابه کرامو ؓ د سبب تپوس اوکړو نوحضورﷺ اوفرمائیل چه زما د تره د ژړا او زارې آواز زما غوږونوته د دې قیدیانونه راتلو(۲) صحابه کرامو ؓ هغه وخت هغه کولاؤکړو نوحضورﷺ ته خوب راغلو.هغه یو انصاری صحابیؓ قید کړې وو دې ډیر مالدار وو هغه سل اوقیه سره زر په خپله فدیه کښې ورکړل. بعضې انصارو دربار نبوتﷺ کښې عرض اوکړو چه مونږ غواړو چه ستاسو تره عباسؓ بغیرد زرود فدیه اخستونه آزاد کړو خوحضورﷺ اوفرمائیل چه یو پیسه هم کمه مه اخلئی پوره فدیه واخلئی(۳)قریشو د فدیه رقم ورکولوسره خپل سړی راؤلیګل هریودخپل خپل قیدی دخپلې خوښې رقم وصول کړو. عباسؓ اووئیل یارسول اللهﷺ! زه خومسلمان یم. حضورﷺ اوفرمائیل ماته ستا د اسلام علم دې که ستا دا وینا صحیح وی نو الله ﷻ به تاله د دې بدله درکوی. چونکه احکام په ظاهره باندې دی په دې وجه ته خپله فدیه ادا کړه بلکه د خپلو دواړو وریرونوهم یعنی د نوفل بن حارث بن عبدالمطلب او عقیل بن ابی طالب بن عبدالمطلب اود خپل حلیف عتبه بن عمرو څوك چه د بنو حارث بن فهر د قبیلې نه دې. هغه اووئیل یا رسول اللهﷺ! ماسره خو دومره مال نشته. حضورﷺ اوفرمائیل چه هغه مال چرته لاړو کوم چه تا او ام الفضل په زمکه کښې خښ کړې وو او تا وئیلي وو که زه په خپل دې سفرکښې په کارراغلم نو دا مال به ځما د زامنو، فضل، عبدالله او د قثم وی. اوس خو د عباسؓ د خلې نه ناڅاپی اووتل والله زما ایمان دې چه ته د الله ﷻ رښتونې رسول نې د دې خښیدو د واقعه نه زما او ام الفضل نه علاوه څوك خبر نه وو. ښه ده داسې اوکړه چه زما نه شل اوقیه سره زر ستاسوﷺ لښکر ته ملاؤ دی هم هغه زما زرفدیه اوګنړئی. حضورﷺ اووئیل هیڅ کله نه هغه مال خو الله ﷻ په خپل فضل سره مونږ ته راکړې دې. نو هغه خپله د خپلو وریرونو او خپل حلیف فدیه د خپل ځان نه ورکړه. په دې باره کښې اللهﷻ دا آیت نازل کړو که چرې په تاسو کښې ښیګړه وی نو الله ﷻ به تاسو ته د دې نه بهتر بدله درکړی.(۴)

---

۱) طبقات ابن سعد:۴/۱۰، دلائل النبوة:۳/۱۴۰-۱۴۱.
۲) طبقات ابن سعد:۴/۱۰،دلائل النبوة:۳/-۱۴۱.
۳) صحیح بخاری کتاب المغازی باب ۱۲ حدیث:۴۰۱۸، ابن حبان :۴۸۹۴، بیهقی:۶/۲۰۵.
۴) تفسیرقرطبی:۸/۵۲، دلائل النبوة:۳/۱۴۲،حاکم:۳/۳۲۴وهوحسن، امام حاکم دې ته دمسلم په شرط باندې صحیح وئیلې دې اوامام ذهبی د دې موافقت کړې دې.



د حضرت عباس ﷛ بیان دې چه د الله ﷻ فرمان پوره شو د هغه شل اوقیه په بدله کښې ماته په اسلام کښې الله ﷻ شل غلامان راکړه کوم چه ټول په ټول مالداران وو او ورسره ماته د الله ﷻ عزوجل نه د مغفرت هم امید دې. هغه فرمائی زما باره کښې دا آیت نازل شوې دې ما د خپل اسلام خبر حضور اکرم ﷺ ته ورکړو او ما ونیل چه زما شل اوقیه بدله ماته راکړه کوم چه زما نه اخستې شوی دی. حضور ﷺ انکار اوکړو. الحمدلله چه الله تبارك وتعالى ماته شل غلامان راکړه کوم چه ټول سوداګروو.
هغه اود هغه ملګرو حضور ﷺ ته ونیلې وو چه مونږ ستا په وحی باندې ایمان راوړې دې. ستا د رسالت ګواه یو مونږ په خپل قوم کښې ستا خیرخواهی کوله په دې باندې دا آیت نازل شو چه الله ﷻ د زړونو د حال نه خبر دې د چا په زړه کښې چه نیکی وی اود هغه نه چه څه اخستې شوی دی د هغې نه به ډیر زیات ورکړې کیدې شی. او وړاندینې شرك به ورته هم معاف کولې شی. فرمانی چه د ټولې دنیا د ملاویدو نه هم ډیره خوشحالی ماته د دې آیت د نازلیدو نه اوشوه. مانه چه څه اخستې شوې وو والله د هغې نه سل حصې زیات ماته ملاؤشو. اوزما امید دې چه زما ګناهونه هم اووینخلې شی.
**د رسول کریم ﷺ د سخاوت انتهاء::** روایت دې چه کله د بحرین خزانه سرکار رسالت ﷺ ته راورسیده هغه د اتیاؤ زرو وه. حضور ﷺ د ماسپخین د مانځه د پاره اودس کړې وو نو حضور ﷺ د هر یو شکایت کونکی او د هرسوال کونکی خبره واوریده اود مانځه نه وړاندې ټوله خزانه د الله ﷻ په لارکښې تقسیم کړه. حضرت عباس ﷛ ته نی حکم ورکړو واخله د دې نه او پنډ اوتړه یوسه. نودا د هغه د پاره ډیر بهتر وه او الله ﷻ به نی ګناه هم معاف کړی. دا خزانه ابن الخضرمی رالیګلې وه دومره مال حضور ﷺ له د دې نه وړاندې یا دې نه پس کله هم نه وو راغلې. ټول په ټول نی په بوجوباندې خورکړو او د مانځه اذان اوشو. نبی کریم ﷺ تشریف راوړو او مال سره اودریدو. د جمات مونځ ګذار هم راغله بیا حضور ﷺ هر یو ته ورکول شروع کړه. په هغه ورځ نه ناپ تول وو اونه شمیر نو چه څوك راغله او بنه په کولاؤ زړه سره نی یوړه. حضرت عباس ﷛ خو په خپل خادر کښې پنډ اوتړلو خو اوچت نی نه کړې شو. نو حضور ﷺ ته نی عرض اوکړو یارسول الله ﷺ! لږ شان راوچت کړه. حضور ﷺ له ډیره خندا ورغله چه غابنونه مبارك نی اوبرقیدل. ونی فرمانیل چه لږ کم کړه چه څومره اوچتولې شی دومره یوسه. نو څه نی کم کړل او اوچت نی کړل او په تلوکښې اوونیل الحمدلله الله ﷻ خو یوه خبره پوره کړه او راونی خودله. او دویمه وعده به هم ان شاء الله پوره کیږی. دا د هغې نه بهتر دی کوم چه زمونږ نه اخستې شوی وو. پیغمبر ﷺ برابر هغه مال تقسیم کولو تردې چه یوه پیسه هم پاتې نه شوه. حضور ﷺ خپل کور ته د دې نه یوه پیسه هم ورنه کړه. بیا د مانځه د پاره وړاندې شو او مونځ نی ورکړه. دویم حدیث د بحرین نه حضور ﷺ له دومره مال راغلو چه د دې نه وړاندې یا روستو دومره مال نه وو راغلې. حکم نی ورکړو په جمات کښې خورکړنی بیا مانځه له راغلو یو طرف ته نی هم خیال اونه کړو مونځ نی اوکړو نو کیناستو بیا چه به نی څوك لیدل نو ورکول به نی. په دې کښې عباس ﷛ راغلو نو ونی ونیل یارسو الله ﷺ! ماته هم راکړه ما خپله اود عقیل فدیه ورکړې ده. حضور ﷺ اوفرمائیل په خپل لاس باندې واخله. هغه په څادر کښې پنډ اوتړلو د دروند والی د وجه اوچت نه کړې شو نو ونی ونیل یارسول الله ﷺ! چاته حکم اوکړه چه زما د اوږې پورې راوچت کړی. هغوی ﷺ اوفرمائیل چه زه خو چاته نه وایم نو هغه ونیل بنه ده پخپله نی لږ شان راوچت کړه. حضور ﷺ د دې نه هم انکار اوکړو نو د زړه په نه غوښتلو نی لږ شان کم کړو بیا اوچت کړو او روان شو. د هغه د دې لالچ په وجه حضور ﷺ هغه ته کتل ترکومې چه د سترګو نه پناه شوې نه وو. نو چه کله ټول مال تقسیم شو یوه پیسه هم باقی بچ نه شوه نو بیا حضور ﷺ د هغه ځای نه پاسیدو.
امام بخاری ﷫ هم دا روایت په څو ځایونو کښې خپل کتاب صحیح بخاری شریف کښې تعلیقا د جزم

په صيغه سره وارد كړې دي.(۱)
د كافر د خيانت نه ويره نه ده پكار::كه چرې دا خلق خيانت كول غواړي نو دا دومره خبره نه ده دې نه
وړاندې هغوى پخپله د الله ﷻ خيانت كړې وو. نو د هغوى نه دا هم ممكن دى چه اوس څه په ښكاره
كوى د هغې خلاف د هغوى په زړونوكښې وى. دې نه ته مه ويريږه لكه څنګه چه الله ﷻ هغوى دې
وخت كښې ستا په قابوكښې كړى دى دغه شان هغه د هميشه د پاره قادر دى. د الله ﷻ يو كار هم د
حكمت اوعلم نه خالى نه وى.دوى سره او ټول مخلوق سره چه څه هغه كول غواړى پخپل ازلى او ابدى
پوره علم او كامل حكمت سره ئى كوى. حضرت قتاده رحمه الله وائي دا آيت د عبدالله بن سعد بن ابى شرح
كاتب باره كښې نازل شوې دې كوم چه مرتد شوې وو او مشركانوسره ملاوشوې وو.د حضرت عطاء
خراسانى رحمه الله قول دې چه د حضرت عباس رضي الله عنه اود هغه د ملګرو باره كښې نازل شوې دې. او هغوى
وئيلې وو چه مونږ به ستاسو ﷺ خيرخواهى كوو. سدى رحمه الله دا عام او ټولوته شامل وئيلې دې. هم دغه
صحيح قول دى. والله اعلم.

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَهَاجَرُوا وَجَاهَدُوا
ابيشكه هغه كسان | چې ايمان ئې قبول كړو | اوهجرت ئې اوكړو | اوجهادئې اوكړو
ابيشكه كومو كسانو چه ايمان راوړې دې اوهجرت ئې كړې دې او په خپلو

بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَالَّذِينَ
په مالونو خپلو سره | اوپه نفسونو خپلو سره | په لاردالله كښى | اوهغه كسان
مالونو اوجانونو باندې ئې د الله په لار كښې جهاد كړې دې اوهغه كسان چه (مهاجرينو مسلمانانوته ئې)

آوَوا وَّنَصَرُوا أُولَٰئِكَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ
چې خاى ئې وركړو | او مدد ئې اوكړو | دغه كسان | اخينى دهغوىٔ | دوستان دى | دخينو
خانې وركړې دې او (دهغوى) مدد ئې كړې دې انودغه كسان په خپل مينځ كښې د يوبل دوستان دى

وَالَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يُهَاجِرُوا مَا لَكُم مِّن وَلَايَتِهِم
اوهغه كسان | چې ايمان ئې راوړو | اوهجرت ئې اونه كړو | نشته | ستاسو دپاره | ددوستانې دهغوىٔ نه
اوكومو كسانو چه ايمان راوړې دې (خوتر اوسه پورې) هجرت ئې نه دې كړې ستاسو اودهغوى د ملګرتيا

مِّن شَيْءٍ حَتَّىٰ يُهَاجِرُوا ۚ وَإِنِ اسْتَنصَرُوكُمْ فِي الدِّينِ
هيڅ | خيز | تردئ پورې | چى هغوىٔ هجرت اوكړى | اوكه | هغوىٔ مدداوغواړى ستاسو نه | په دين كښى
هيڅ څه تعلق نشته تردې چه دوى هجرت اوكړى | (البته) كه دوى ستاسونه په دين كښې (د كافر خلاف)

فَعَلَيْكُمُ النَّصْرُ إِلَّا عَلَىٰ قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُم
نولازم دى په تاسو | مددكول | امګرنه | خلاف دهغه قوم | چى په منځ ستاسو | اوپه منځ دهغوىٔ كښى
مدد اوغواړى نوپه تاسو باندې (دهغوى) مدد لازم دې مګردهغه قوم خلاف (په تاسو هغوى سره مدد نه كوئ)

۱) صحيح بخارى كتاب الصلاة باب القسمة وتعليق القنول ل المسجد:۳۱٦۵،۳۰٤۹،٤۲۱، بيهقى:۳۵٦/٦.

| مِّيثَاقٌ ط | وَاللّٰهُ | بِمَا | تَعْمَلُوْنَ | بَصِيْرٌ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| معاهده وي ا | او الله | د هغه كارونو | اچې كوئ ئې تاسو | ليدونكې دې ا |

چه ستاسو او د هغوی په مینځ کښې معاهده وی ا او الله ستاسود عملونو لیدونکې دې ا

**قوله تعالى: إِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَهَاجَرُوْا**

**د صحابو درې قسمونه مهاجرين انصار اوغيرمهاجرين:-** دمسلمانانو قسمونه بيانولې شي.

**اول قسم:** يو خو مهاجرين كومو چه د الله ﷻ په نوم باندې خپل وطن پريخودو. خپل كور مال حال تجارت خاندان قبيله ياران دوستان ئې د الله ﷻ په دين باندې د قانميدو د پاره پريخودل اونه ئې خان ته خان اوونيل او نه ئې مال ته مال.

**دويم قسم:** بل مدنى انصار چا چه مهاجرين خپل خان سره ديره كړل. په خپلو مالونوكښې ئې د هغوی حصه اولګوله. هغوی سره يوځاى شو اود هغوی دښمنانو سره ئې جنګ اوكړو دا ټول په خپل مينځ كښې يو دى. په دې وجه رسول الله ﷺ په هغوی كښې روروليَ قايم كړه. يو انصارى اويومهاجر ئې رونړه رونړه جوړكړل. دا رورولي د خپلولئى نه هم مقدم وه. د يو بل به وارثان جوړيدل دا آخره كښې منسوخ شوه.(١) نبى كريم ﷺ به فرمائيل چه انصار او مهاجرين په خپل مينځ كښې د يوبل ولى وارثان دى اود مكې د فتح آزاد كړې شوې مسلمانان قريشى خلق او آزاد شوى ثقيف خپل مينځ كښې د يو بل د قيامته پورې واليان دى.(٢)او په يو روايت كښې دى چه په دنيا اوآخرت كښې (٣) د مهاجرو او انصارو په تعريف كښې نورهم ډير آياتونه دى.د الله ﷻ فرمان دې﴿وَالسّٰبِقُوْنَ الْاَوَّلُوْنَ﴾اول اول سبقت كونكى مهاجر او انصار اود هغوی د احسان تابعدار هغه دى د چا نه چه الله ﷻ خوشحاله دې او دوى د هغه نه خوشحاله دى. الله ﷻ د هغوی د پاره جنتونه تياركړى دى دكومو د ونولاندې چه چينې بهيږى.او په بل آيت كښې دى ﴿لَقَدْ تَّابَ اللّٰهُ عَلَى النَّبِيِّ﴾ په نبى كريم ﷺ باندې او په هغه انصارواو مهاجرينو باندې الله ﷻ د خپل رحمت توجو فرمائيلې كومو چه د سختئى په وخت كښې هم د نبئ كريم ﷺ اتباع پرينخوده.

اوبه بل آيت كښې دى﴿لِلْفُقَرَآءِ الْمُهٰجِرِيْنَ﴾ددې مهاجرومحتاجانودپاره دى كوم چه دخپلو مالونو اوښارونو نه ويستلې شوى دى. اوكومو چه دوى ته ځائ وركړو اوهغوى سره ئې محبت اوساته اوهغوى ته ئې په كولاؤ زړه سره مال وركړه بلكه په خپل ضرورت باندې ئې د هغوى ضرورت مقدم كړو. يعنى د هجرت كوم فضيلت چه الله ﷻ مهاجرينو ته وركړې په هغې باندې هغوى دوى سره حسد نه كوى. د دې آياتونو نه معلوميږى چه مهاجر په انصارو باندې مقدم دى.د علماؤ پدې كښې اتفاق دې. مسندبزار كښې دى رسول الله ﷺ حذيفه ﷺ ته په هجرت او نصرت كښې اختيار وركړو نو هغه هجرت خوښ كړو (٤)

**دريم قسم:** بيا فرمائى چه چا ايمان راوړو خو وطن ئې پرينخودو هغوى ته د دوى رفاقت حاصل نه شو. دا د مؤمنانو دريم قسم دې كوم چه په خپل ځائ باندې حصار شو د هغوى د غنيمت په مال كښې هيڅ حصه نه وه او نه په خمس كښې او كه په يو جنګ كښې شركت اوكړى نو هغه بله خبره ده. په مسنداحمد كښې دى چه حضور ﷺ به څوك د فوجى دستې سپه سالار جوړولو او ليګلو به ئې نو هغه ته

---

١) صحيح بخاری كتاب الفرائض باب ذوى الارحام: ۴٧۴٧.
٢) احمد/٣۶٣، مجمع الزوائد: ١٠/١۵.
٣) مسندابي يعلى: ۵٠٣٣.
۴) مسندالبزار: ٢٧١٨، مجمع الزوائد: ٢/۴٨١، طبران: ٣٠١٠.

په نی نصیحت کولوچه کوره په خپل زړه کښې دالله ﷺ ويره لوه.مسلمانانو سره هميشه دخير خواهۍ سلوك كوه.خه دالله ﷺ نوم واخله اود هغه په لار کښې جهاد کوه، الله ﷺ سره کفر کونکو سره جنګېږه. د خپلو دښمنانو مشرکانو په وړاندې درې خبرې پیش کوه په دې کښې چه کومه هم هغوی منظور کړي هغوی ته اختیار دی. هغوی ته وایه چه اسلام قبول کړنی که وې منی نو دهغوی نه رامنع شه اود هغوی اسلام قبول کړه او هغوی ته اووایه د کافرانو وطن پریږدئی اودمهاجرینو ښارونو ته لاړشئی. نو چه کوم حق د مهاجرينو دې د هغوی به هم وی او کوم چه په مهاجرو باندې دې په هغوی باندې به هم وی. ګنې دوی به د کلي والو مسلمانانو په شان وی د ایمان احکام به په هغوی جاری وی. په فی او غنیمت کښې به د هغوی حصه نه وی. او دا یوه بله خبره ده که هغوی په یو فوج کښې شرکت اوکړی او جنګ اوکړی.که دا اونه منی نو ورته اووایه چه جزیه ورکړنی.که دا قبول کړی نودجنګ نه منع شې اود هغوی نه جزیه اخلنی.که د دې دواړو خبرو نه انکار اوکړی نو د الله ﷺ امداد اوبهروسه غوښتلو باندې هغوی سره جهاد اوکړنی(۱) کوم کلي وال مسلمانان چه هلته موجود دی هجرت ئی نه دې کړې که دوی تاسو نه په یو وخت کښې امدا اوغواړي د دین د دښمنانو په مقابله کښې تاسو غواړي نو د هغوی مدد کول په تاسو واجب دی. خو که په مقابله کښې داسې یو قبیله وی چه په تاسو کښې او په هغوی کښې صلح معاهده ده نو خبردار تاسو معاهده مه ماتوئی. قسمونه مه ماتوئی.

| وَالَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | بَعْضُهُمْ | اَوْلِيَآءُ | بَعْضٍ ط | اِلَّا | تَفْعَلُوْهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوهغه کسان | چې کافران دي | ځينې دهغوئ | دوستان دي | دځينو | که | اونه کړئ تاسو دا کارونه |
| اوهغه کسان چه کفرئې کړې دې نوهغوی په خپل مينځ کښې د يوبل ملګري دی | | | | | | |

| تَكُنْ | فِتْنَةٌ | فِي الْاَرْضِ | وَفَسَادٌ | كَبِيْرٌ ط |
|---|---|---|---|---|
| انو شي به | فتنه | په زمکه کښې | اوفساد | لوئ |
| که تاسو داسي اونکړئ نو په زمکه کښې به لوئې فساد جوړ شي | | | | |

**قوله تعالى: وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا بَعْضُهُمْ اَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ط**

**مسلمان دغيرمسلم دوست نه وی:**-پورته د مسلمانانو کارسازی رفاقت او دولایت ذکر اوشو اوس دلته دکافرانو په نسبت هم بیا فرمانی اود کافرانو اومؤمنانودوستانه نی ختمه کړه.په مستدرك حاكم کښې دی رسول اللهﷺ فرمانی دوه مختلف مذهبونووالا خلق د یو بل وارثان نه شي جوړیدې نه مسلمان د کافر وارث او نه کافرد مسلمان وارث. بیا نبی کریمﷺ هم د دې آیت تلاوت اوفرمائیلو(۲) په بخاری او مسلم کښې هم دی چه مسلمان د کافر اوکافرد مسلمان وارث نه شي جوړیدې(۳) په سنن وغیره کښې دی دوه مختلف مذهبونو والا خپل مینځ کښې د یو بل وارث نه دی(۴) دې ته امام ترمذی رحمه الله حسن وانی.تفسیر ابن جریر کښې دی چه یونوی مسلمان نه نبی کریم وعده واخسته چه مونځ کوه

(۱) صحیح مسلم کتاب الجهادباب تامیر الامام الامراعلی البعوث؟وصیته ایاهم:۱۷۳۱، ابوداؤد: ۲۶۱۲، بیهقی:۴۹/۹، السنن الکبری للنسائی ۸۷۶۴، ابن ماجه:۲۸۸۵،احمد:۳۵۲/۵،ابن حبان ۴۷۳۹، عوانه:۶۴۹۵، ابن ابی شیبه:۴۷۵/۶.

(۲) حاکم:۲۴۰/۲.

(۳)صحیح بخاری کتاب الفرائض باب لایرث المسلم الکافرولاالکافرالمسلم...:۶۷۶۴، صحیح مسلم:۱۶۱۴،ابوداؤد:۲۹۰۹، ترمذی :۲۱۰۷،السنن الکبری:۶۳۷۲،احمد:۲۰۰/۵، ابن حبان:۶۰۳۳، بیهقی:۲۱۷/۶.

(۴) ابوداؤد کتاب الفرائض باب هل یرث المسلم الکافر:۲۹۱۱وسنده حسن، ابن ماجه:۳۷۳۱، احمد:۱۷۸/۲، ترمذی:۲۱۰۸ عن جابرؓ،ابن لجارود:۹۶۷،ابن حبان:۵۹۹۶،حاکم:۲۶۲/۲،مجمع الزوائد:۲۹۳/۶،السنن الکبری:۶۳۸۱، دارقطنی:۴۵۷

زکوٰة ورکوه د بيت الله حج کوه د رمضان روژې ساته اوچه کله او کوم خاى کښې د شرک اور راوچت شي نو خپل خان د دې په مقابل کښې او دې سره په جنګ اوکړه، دا روايت مرسل دې. او په مفصل روايت کښې دى نبى کريم ﷺ فرمائي زه د هرهغه مسلمان نه بيزار يم چه په مشرکانو کښې حصار وى. آيا هغه دواړو طرف ته لګيدلې اور نه وينى(۱) په ابوداوٗد کښې دى حضور ﷺ فرمائي څوک چه مشرکانو سره تګ راتګ ساتى هغوى سره اوسيږى هغه هم د هغوى په شان دې(۲) ابن مردويه کښې دى د الله ﷻ رسول د رسولانو سرتاج حضرت محمد مصطفى ﷺ فرمائي کله چه هغوى تاسو له راشى د چا په دين او اخلاق سره چه تاسو رضامندئ نو د هغوى په نکاح کښې ورکړئ که چرې تاسو داسې اونه کړه نو په ملك کښې به زبردست فتنه او فساد وى. خلقو معلومات اوکړو چه يارسول الله ﷺ! سره د دې که په هغې کښې څه وى. حضور ﷺ اوفرمائيل چه کله تاسو له د يو داسې سړى غوښتنه راشى د چا په دين او اخلاقو چه تاسو خوشحاله يئ نو هغوى سره نکاح اوکړئ. درې ځل ئې دا اوفرمائيل. (۳) د آيت د الفاظو مطلب دا دې که چرې تاسو د مشرکانو سره يو شان والې اوکړو او ايماندارانو سره مو دوستى اونه ساتله نو يوه فتنه به خوره شي. دا ګډوډوالې به خرابه نتيجه ورکړى او په خلقو کښې به زبردست فساد خورشي.

| | | |
|---|---|---|
| وَالَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | وَهَاجَرُوْا |
| اوهغه کسان | اچې ايمان ئې راوړو | اوهجرت ئې اوکړو |
| اوهغه خلق چه ايمان ئې راوړې دې اوهجرت ئې کړې دې | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَجٰهَدُوْا | فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ | وَالَّذِيْنَ | اٰوَوْا | وَّنَصَرُوْٓا |
| اوجهاد ئې اوکړو | په لاره د الله کښې | اوهغه کسان | اچې پناه ورکړه هغوىٰ | اوامداد ئې اوکړو |
| اود الله په لار کښې ئې جهاد کړې دې اوهغه خلق چه (مهاجرينوته) ئې ځائې ورکړې دې او هغوى سره ئې مدد ئې کړى دى | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اُولٰٓئِكَ | هُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ | حَقًّا ؕ | لَهُمْ | مَّغْفِرَةٌ | وَّرِزْقٌ | كَرِيْمٌ ۝ |
| دغه کسان چې دى | هم هغوىٰ مومنان دى | په حقه | د هغوىٰ لره | بښنه. | اورزق | عزتمند |
| هم دغه خلق په رښتيا مؤمنان دى (د الله ﷻ د طرفه) د دوى دپاره ښښنه او د عزت رزق دې | | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَالَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | مِنْۢ بَعْدُ | وَهَاجَرُوْا | وَجٰهَدُوْا | مَعَكُمْ |
| اوهغه کسان اچې | ايمان ئې راوړوا | روستو | اوهجرت ئې اوکړو | اوجهاد ئې اوکړو | تاسو سره |
| اوکوم کسانو چه د دې نه پس ايمان راوړې دې اوهجرت ئې کړې دې او ستاسو په ملګرتيا کښې ئې جهاد کړى دې، | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَاُولٰٓئِكَ | مِنْكُمْ ؕ | وَاُولُوا الْاَرْحَامِ | بَعْضُهُمْ | اَوْلٰى |
| نو دغه کسان | استاسو نه دى | اوخاوندان دخپلولئ | خينى دهغوىٰ | زيات حقدار دى |
| نودغه خلق هم ستاسو نه دى اخو دوينې خپلوان د الله ﷻ په کتاب کښې د يو بل نه زيات | | | | |

(۱) ابوداوٗد كتاب الجهاد باب النهى عن قتل من اعتصم بالسجود: ۲٦٤٥، ترمذى: ۱٦۰٤، نسائى: ٤۷۸٤.
(۲) ابوداوٗد كتاب الجهاد باب فى اقامة بارض الشرك: ۲۷۸۷.
(۳) ترمذى كتاب النكاح باب ماجاء فيمن ترضون دينه فزوجوه: ۱۰۸٤، مختصراً.

| بِبَعۡضٍ | فِي كِتَٰبِ | ٱللَّهِۚ | إِنَّ ٱللَّهَ | بِكُلِّ شَيۡءٍ | عَلِيمٌۢ ﴿٧٥﴾ |
|---|---|---|---|---|---|
| په خپلونورو باندې | په کتاب | دالله کښې | بیشکه الله | په هر څیز باندې | ښه پوهه دې |

حقدار دی بیشکه الله ﷻ په هریو څیز باندې ښه پوهیږی

**قوله تعالی:: أُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡمُؤۡمِنُونَ حَقّٗاۚ**

**دمؤمنانو دآخرت حال:** دمؤمنانو دنیاوی حکم ذکرکولونه پس اوس دآخرت حال بیانولې شی چه د هغوی دایمان صداقت ظاهروی لکه څنګه چه ددې سورت په شروع کښې بیان شوی دی.هغوی ته به بښنه ملاویږی اودهغوی ګناه به معاف کیږی هغوی ته به دغزت پاک رزق ملاویږی چه دبرکت والا، همیشه به وی طیب اوپاك به وی.قسم قسم خوندناك ښکلې اونه ختمیدونکې به وی.دهغوی تابعداری کونکی ایمان او نیك عمل کښې د هغوی ملګرتیا کونکی به په آخرت کښې هم په درجوکښې هغوی سره وی. لکه چه ﴿ وَٱلسَّٰبِقُونَ ٱلۡأَوَّلُونَ﴾ او ﴿وَٱلَّذِينَ مِنۢ بَعۡدِهِمۡ﴾ کښې فرمائی.

**چې څوک چاسره محبت کوی قیامت کښې به هم هغه سره وی:** په متفق علیه بلکه په متواترحدیث کښې دی چه انسان به هغه چا سره وی چا سره چه محبت ساتی[1] په دویم حدیث کښې دی څوك چه کوم قوم سره محبت ساتی هغه هم د هغوی نه دې. په یو بل روایت کښې دی د هغه حشر به هم هغوی سره وی.[2] د مسند احمد حدیث تیرشوې دې چه مهاجر او انصار په خپل مینځ کښې د یوبل ولی دی. د مکې د فتح نه پس مسلمانان د قریشو او ثقیف آزاد کړې شوی په خپل مینځ کښې یو دی، ترقیامه پورې دوی ټول په خپل مینځ کښې ولی دی. بیا د اولوالارحام بیان اوشو دلته د هغې نه مراد هغه خپلوان نه دی چه د علماؤ فرائضو په نیز په دې نوم سره یادولې شی یعنی دچاچه یوه حصه مقرر نه وی اوچه عصبه هم نه وی لکه ترور، ماما د لونړو ا ولاد خورې خورزه وغیره.دبعضو هم داخیال دې چه هغوی د آیت نه حجت نیسی اوهغوی ته په دې باره کښې د صراحت والا ښائی. دا نه ده بلکه حق دا دې چه داآیت عام دې اوټولوخپلوانوته شامل دې لکه چه ابن عباس رضي الله عنه مجاهد رحمه الله عکرمه رحمه الله حسن رحمه الله قتاده رحمه الله وغیره وائی چه دا ناسخ دې. د حلیفانو یوځائ وارثان جوړیدلو او په رورولنی باندې وارث جوړیدل چه اول دستور وو نودا به د علماؤ فرائض ذی الارحام ته شامل وی خاص نوم سره. او چه څوك هغوی وارث نه جوړوی هغوی سره ډیر دلیلونه دی. د ټولونه قوی دا حدیث دې چه الله ﷻ هر حقدار ته د هغه حق ورکړې دې. نو د یو وارث د پاره هیڅ وصیت نشته[3] هغه وائی که چرې دوی هم حقدار وې نو د دوی به هم حصې مقرر کیدې نوکله چه دوی نه دی نو هغوی هم نه دی.

**﴿الحمدلله﴾** د سورة انفال تفسیر ختم شو.

په الله ﷻ باندې زمونږه بهروسه ده هم هغه مونږ له کافی دې او هم هغه بهترین کارسازدې.

---

[1] صحیح بخاری کتاب الادب باب علامة الحب فی الله ...:۶۱۶۸، صحیح مسلم: ۲۶۴۰.

[2] المعجم الصغیر: ۸۷۴.

[3] ابوداؤد کتاب الوصایا باب ماجاء فی الوصیة للوارث: ۲۸۷۰وهوحسن، ترمذی: ۲۱۲۰،ابن ماجه:۲۸۱۳، مسند الطیالسی ۱۱۲۷، احمد:۲۶۷/۵،بیهقی:۲۶۴/۶.

## تفسیر سورة توبه

| ایاتونه | | سورة التوبة مدنية وهي مائة وتسع وعشرون اية وستة عشر ركوعاً | | | ركوع گانې |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | |
| ۹ | | | | | ۱۶ |

| بَرَآءَةٌ | مِّنَ اللّٰهِ | وَرَسُوْلِهٖٓ | اِلَى الَّذِيْنَ | عٰهَدْتُّمْ |
|---|---|---|---|---|
| بیزاري ده ا | دطرفه دالله نه ا | اودرسول دهغه نه ا | هغه کسانوته | اچې وعده ورسره کړې ده تاسو ا |
| دالله اود هغه د رسول د طرفه د مشرکانو هغه کسانو ته د بیزارئ اعلان دې چه تاسو ورسره معاهده | | | | |

| مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۝ | فَسِيْحُوْا | فِي الْاَرْضِ | اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ | وَّاعْلَمُوْٓا |
|---|---|---|---|---|
| د مشرکانونه ا | نواوگرځئ تاسو ا | په زمکه کښې ا | څلورمیاشتې ا | اوپوهه شئ |
| کړې ده انوپه زمکه (د حرم) کښې څلور میاشتې (نور) اوگرځئ ا اوپه دې باندې پوهه شئ چه تاسو | | | | |

| اَنَّكُمْ | غَيْرُ مُعْجِزِي اللّٰهِ | وَاَنَّ اللّٰهَ | مُخْزِي | الْكٰفِرِيْنَ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| چې بیشکه تاسو | انه یئ عاجزه کونکي دالله ا | او بیشکه الله ا | رسواکونکي دی ا | دکافرانو ا |
| الله ﷻ لره عاجزه کولې نشئ (چه د هغه نه بچ شئ) اوپه دې پوهه شئ چه الله ﷻ دکافرانو رسوا کونکی دی | | | | |

**قوله تعالى:: بَرَآءَةٌ مِّنَ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖٓ**

**دمشرکانونه دبرائت اعلان:-** داسورت د ټولو نه آخرکښې په رسول اللهﷺ نازل شوې دې.بخاری شریف کښې دی چه دټولو آخری آیت ﴿يَسْتَفْتُوْنَكَ﴾ نازل شوې.اودټولونه آخری سورت سورت براءة نازل شوې[1]

**دبسم الله نه لیکلو وجه::** ددې په شروع کښې دبسم الله نه کیدو وجه داده چه صحابه کرامو رضي الله عنهم د حضرت امیرالمؤمنین عثمان بن عفان رضي الله عنه اقتدا کولو سره دا په قرآن کښې نه وو لیکلې. ترمذی شریف کښې دی چه حضرت ابن عباس رضي الله عنه د حضرت عثمان رضي الله عنه نه تپوس اوکړو چه آخر څه وجه ده چه تا سورة انفال کوم چه مثانی نه دې اوسورة براءة کوم چه د مئین (دا یو خاص اصطلاح ده چه د قرآن پاک بعضې سورتونو ته وئیلې شی) څنې دې یوځائ کړل اود هغې په مینځ کښې دې بسم الله الرحمن الرحیم اونه لیکله اوپه ړومبو اووه سورتونوکښې دې دا اوساتل؟ هغوی جواب ورکړوچه ډیرکرتې به حضور اکرمﷺ باندې ډیر سورتونه په یوځل نازل شوی.کله چه به آیت نازل شونوحضورﷺ دوحې لیکونکې راوغوښتو او ورته به نې اوفرمائیل چه دا آیت په فلانکې سورت کښې لیکله په کوم کښې چه دا ذکر دی. سورة انفال په مدینه منوره کښې د ټولونه اول نازل شوې وو او سورة براءة د ټولونه په آخر کښې د دواړو بیانونه یو شان ملاویدل زما خیال شو چه چرته دا هم د دې نه وی.دحضورﷺ انتقال اوشو او هغوی مونږ ته نه ووفرمائیلی چه دا د دې نه دی په دې وجه ما دواړه سورتونه متصل اولیکل اود دې په مینځ کښې مې بسم الله الرحمن الرحیم اونه لیکله. او په اووه ړومبو اوږدو سورتونوکښې مې داکیخودل. [2]

د دې سورت ړومبئی حصه هغه وخت نازله شوه کوم وخت کښې چه حضورپاکﷺ د غزوه تبوک نه واپس راتلو.دحج زمانه وه مشرکانو دخپل عادت مطابق د بیت الله شریف طواف په بربنده کولو. نبی کریمﷺ هغوی سره یو ځائ کیدل خوښ نه کړل او حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه نې د حج امام جوړکړو او

---

[1]) صحيح بخاری كتاب التفسير سروة براءة باب قوله ﴿براءة من الله ورسوله إلى اللذين﴾: ٤٦٥٤، صحيح مسلم: ١٦١٨.

[2]) ابوداؤد كتاب الصلاة باب ماجهر: ٧٨٦ وسنده حسن، حسن ترمذی: ٣٠٨٦، السنن الكبرى للنسائي: ٨٠٠٧، احمد: ٥٧/١.

په دغه کال نی مکې مکرمې ته روان کړو چه مسلمانانوته د حج احکام اوښائی او مشرکانوته اعلان اوکړی چه هغوی دې راتلونکی کال کښې حج له نه راځی او د سورة براءة هم په عامو خلقو کښې اعلان اوکړی. هغوی پسې بیا حضرت علی ؓ اولیږلو چه د حضور اکرم ﷺ پیغام د قریب خپلوان په حیثیت سره اورسوی لکه څنګه چه د دې تفصیلی بیان راځی ان شاء الله. نو فرمان دې چه دا بې تعلقی د د الله ﷻ اود هغه د رسول ﷺ د طرف نه. بعضې خو وائی چه دااعلان د هغه عهدوپیمان متعلق دې کوم سره چه یووخت هم مقرر نه وو په کوم کښې چه وعده د څلورو میاشتونه کمه وه چه د هغې اوږده موده وه هغه باقی وه. لکه چه فرمائی ﴿فَأَتِمُّوٓا۟ إِلَيْهِمْ عَهْدَهُمْ إِلَىٰ مُدَّتِهِمْ﴾ دهغوی د پوره مودې پورې ته هغوی سره د هغوی وعده پوره کړه. په حدیث شریف کښې هم دی حضور ﷺ فرمائی چه مونږ سره د چا معاهده ده مونږ په هغې باندې د مقرر وخت پورې پابند قائم یو. د دې د پاره کښې نور اقوال هم شته خود ټولونه ښه او ټولونه قوی قول هم دغه دې. ابن عباس ؓ فرمائی کومو خلقو سره چه معاهده شوې وه د هغوی د پاره د څلورو میاشتو حد بندی الله ﷻ مقرر کړې وه او کومو سره چه معاهده نه د هغوی د پاره د حرمت والا دمیاشتو تیریدو حد بندی وه یعنی دلسم ذی الحجه نه د محرم د ختمیدو پورې پنځوس ورځې.د دې مودې نه پس حضور ﷺ ته دوی سره دجنګ کولو اجازت ورکړې شوې دې. ترکومې چه هغوی اسلام قبول نه کړی.اوچا سره چه معاهده وه هغوی دې دلسم ذی الحجه داعلان د ورځې نه واخله شلم ربیع الاخرپورې دې خپله تیاری اوکړی نو که بیا غواړی مقابلې له دې راشی. دا واقعه د نهم هجری ده.نبی کریم ﷺ حضرت ابوبکر ؓ د حج امیر جوړکړې لیږلې وو اوحضرت علی ؓ ته نی د دې سورت دیرش یا څلویښت آیاتونه ورکړې وو لیږلې وو چه ته د څلورو میاشتو د مودې اعلان اوکړه. حضرت علی ؓ د هغوی ډیرو کښې کورونوکښې منزلونوکښې په ټلوسره دا آیاتونه هغوی ته واورول او ورسره ئې د سرکار نبوت ﷺ دا حکم هم واورولو چه د دې کال نه پس یو مشرك هم حج له رانشئی اود بیت الله طواف دې یو سړې هم بربنډاونه کړی[1] دقبیله خزاعه قبیله مدلج او نورو ټولو قبیلود پاره هم دا اعلان وو.د تبوك نه پس حضور ﷺ د حج اراده کړې وه خو د مشرکانوهلته راتلل اود هغوی بربنډ طواف کول نبی کریم ته خوښ نه وو په دې وجه نې حج اونه کړواو په دې کال نی حضرت ابوبکر ؓ او حضرت علی ؓ اولیګل. هغوی د ذی المجاز په بازارونو کښې او هرکلی او کوڅه کښې او میدان کښې دا اعلان اوکړو چه د څلورو میاشتو پورې شرك او مشرك ته مهلت دې [2] دې نه پس به زمونږ اسلامی توره خان ښائی شل ورځې دذی الحجه، پوره محرم،پوره صفر پوره ربیع الاول اولس ورځې دربیع الاخر.زهری رحمه الله وائی د شوال نه تر محرم پورې ډهیل وو خودا قول غریب دې اودپوهې نه هم بالاتر دې چه د حکم رسیدو نه اول څنګه موده شمیرلې کیدې شی.

| وَأَذَٰنٌ | مِّنَ ٱللَّهِ | وَرَسُولِهِۦٓ | إِلَى ٱلنَّاسِ | يَوْمَ ٱلْحَجِّ |
|---|---|---|---|---|
| اواعلان دې | د طرفه دالله نه | اودرسول دهغه نه | خلقو ته | په ورځ دحج اکبر |

اود الله ﷻ اودهغه د رسول صلی الله علیه وسلم دطرفه د حج اکبر په ورځ خلقو ته دا اعلان دې چه

| ٱلْأَكْبَرِ | أَنَّ ٱللَّهَ | بَرِىٓءٌ | مِّنَ ٱلْمُشْرِكِينَ ۙ | وَرَسُولُهُۥ ۚ | فَإِن تُبْتُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| په دې خبره | اچې بیشکه الله | ویزاره دې | دمشرکانونه | اورسول د هغه هم | نو که توبه اوویسته تاسو |

الله ﷻ او دهغه رسول د مشرکانو نه بیزاره دې انو که تاسو «دخپل شرک او کفر نه» توبه اوویستله

[1] الطبری: ٤/١٠٠.
[2] ایضا.

| فَهُوَ | خَيْرٌ | لَّكُمْ | وَإِنْ تَوَلَّيْتُمْ | فَاعْلَمُوٓا | أَنَّكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| نو هغه | بهتره ده | تاسو دپاره | او كه مخ واړوو تاسو | نو پوهه شئ | چي بيشكه تاسو |

نو دغه (توبه ويستل) به ستاسو دپاره ډيره ښه وي او كه تاسو (د توبې ويستلو نه) ډډه اوكړه نو پوهه شئ چه تاسو

| غَيْرُ مُعْجِزِي اللَّهِ ط | وَبَشِّرِ | الَّذِينَ | كَفَرُوا | بِعَذَابٍ | أَلِيمٍ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| نه يئ عاجزه كونكي دالله | اوزيرې وركړه | هغه كسانو ته | چې انكار ني كړي دې | په عذاب | دردناك سره |

الله ﷻ عاجزه كولې نشئ (چه دهغه نه به بچ شئ) او هغه كسانو ته چه كفر ني كړي دې د دردناك عذاب زيرې وركړه.

**قوله تعالى:: يَوْمَ الْحَجِّ الْأَكْبَرِ**

دحج اكبر دورځ نه څه مراد دى: د الله ﷻ اود هغه درسول ﷺ د طرف نه عام اعلان دې. او دې هم د لوئ حج په ورځ. دقربانۍ اختر چه دحج د ټولو ورځو نه لويه او افضل ورځ ده چه الله ﷻ اود هغه پيغمبر ﷺ د مشركانو نه خلاص دې ويزاره دې او جدا دې. كه اوس هم تاسو بدى ګمراهى او شرك پريږدئ نو تاسو دپاره بهتر ده توبه اوكړئ نيكان جوړ شئ اسلام قبول كړئ شرك اوكفر پريږدئ. كه تاسو اونه منل او په خپل ذلالت باندې قائم پاتې شوئ نو نه تاسو د الله ﷻ د قبضې نه بهر يئ اونه په راتلونكى وخت كښې په الله ﷻ باندې څه دباؤ اچولې شئ. هغه په تاسو قادر دې او ستاسو كمځئ د هغه په لاس كښې دى هغه به كافرانوته په دنيا كښې هم سزا وركوى او په آخرت كښې به هم عذاب وى.

**دحج اكبرپه ورځ دبراءت اعلان اودهغه متعلق احاديث:** په صحيح بخارى شريف كښې دى حضرت ابو هريره ﷺ فرمائى چه ماته حضرت ابوبكر ﷺ د قربانۍ په ورځ په هغه خلقوكښې چه داعلان دپاره ليږلې وو ونى ليږلم نو مونږ آواز اوكړو د دې كال نه پس يو مشرك هم حج له رانشى اود بيت الله طواف دې يو كس هم بربنډ اونه كړى. بيا نبى كريم ﷺ حضرت على ﷺ راوليږلو چه د سورة براءة اعلان اوكړى نو هغوى هم په منى كښې زمونږ سره د اختر د ورځې دهغه احكامو اعلان اوكړو[1] دحج اكبر ورځ د قربانۍ د اختر ورځ ده. ځكه چه خلقو به حج اصغر وئيلو د حضرت ابوبكر ﷺ د دې اعلان نه پس حجة الوداع كښې يومشرك هم حج له نو راغلې[2] دحنين په زمانه كښې رسول الله ﷺ د جعرانه نه د عمرې احرام تړلې وو بيا ئې په دې كال حضرت ابوبكر ﷺ دحج امير مقرر كړو او رسول الله ﷺ حضرت ابوهريره ﷺ د اعلان دپاره اوليګلو. بيا حضور ﷺ حضرت على ﷺ اوليګلو چه د براءت اعلان اوكړى. حضرت ابوبكر ﷺ دحضرت على ﷺ د راتلو نه پس هم د حج امير وو خو په دې روايت كښې غربت دې. د جعرانې دعمرې والا په كال د حج اميرحضرت عتاب بن اسيد ﷺ وو حضرت ابوبكر ﷺ خو په ۹هـ كښې د حج امير وو. د مسند په روايت كښې دى حضرت ابوهريره ﷺ فرمائى په دې كال حضرت على ﷺ سره زه ووم. مونږ په چغوچغو اعلان اوكړو چه جنت ته به صرف ايماندار خلق ځى اود بيت الله شريف طواف بد هيڅ څوك په بربنډه نه شى كولې. د چا سره چه زمونږ معاهده ده د هغې موده د نن نه څلور مياشتې ده. د دې مودې تيريدو نه پس الله ﷻ اود هغه رسول ﷺ د مشركانو نه برى دې. د دې كال نه پس يو كافر ته هم د بيت الله د حج اجازت نشته. حضرت ابوهريره ﷺ فرمائى دا اعلان په كولو كولو سره زما مرئى كيناسته[3] دحضرت على ﷺ آواز كيناستو نه پس ما اعلان شروع كړې وو. يو روايت كښې دى چا سره چه معاهده ده د هغوى موده هم هغه ده.

---

[1]) صحيح بخارى كتاب التفسير سورة براءة (واذان من الله ورسوله...): ٤٦٥٦، صحيح مسلم: ١٣٤٧، مختصراً، ابوداؤد: ١٩٤٦، مسندابى يعلى. ٧٦.
[2]) صحيح بخارى كتاب الجزية باب كيف ينبذ الى اهل العهد: ٣١٧٧.
[3]) احمد: ٢/٢٩٩، دارمى: ١/٣٣٢، ابن حبان: ٣٨٠٩، حاكم: ٢/٣٣١.

امام ابن جرير رحمه الله فرمائي ماته ويره ده چه دا جمله چرته د يو راوى د وهم د وجه نه وى. څکه چه د مودې باره کښې ددې خلاف ډیرروايتونه دى.مسندکښې دى چه دبراءة اعلان کولوته حضورﷺ حضرت ابوبكرؓ اوليګلو هغه ذوالحليفه ته رسيدې وو چه حضورﷺ اوفرمائيل چه دا اعلان به يا زه پخپله كوم يا زما اهل بيتونه يو كس به ئى كوى. بيا حضورﷺ حضرت علىؓ اوليګلو. (١) حضرت علىؓ فرمائى چه د سورة براءة لس آياتونه كله نازل شو حضورﷺ حضرت ابوبكرؓ راوغوښتو او وئى فرمائيل دا يوسه او اهل مكه ته ئى واوروه. بيائى زه راياد كړم او ارشاد ئى اوفرمائيلو ته لاړشه او ابوبكرؓ سره ملاوشه هغه چه كوم ځئ هم ملاوشې د هغه نه كتاب واخله او مكې والا له لاړشه او هغوى ته ئى اولوله. زه جحفه ته لاړم هلته ملاقات اوشو. ما د هغه نه كتاب واخستو. هغه واپس لاړو او حضورﷺ نه ئى تپوس اوكړو چه آيا زما باره كښې څه آيتونه نازل شو؟ رسول اللهﷺ اوفرمائيل چه نه جبرائيلؑ ماله راغلو او وئى فرمائيل چه ياخودا پيغام پخپله اورسوه يا بل څوك كس چه ستاسو نه وى(٢)په دې سند كښې ضعف دې او دې نه مراد دا هم نه دې چه حضرت ابوبكر ؓ هم هغه وخت واپس شو. نه بلكه هغوى په خپله سردارئى كښې حج اوكړو اود حج نه چه فارغ شو نو بياواپس شو لكه څنګه چه په نورو روايتونوكښې صراحتاً ذكر دى. او په حديث شريف كښې دى چه حضرت علىؓ ته كله نبى كريمﷺ ددې پيغام درسولو ذكر اوكړو نوحضرت علىؓ عذر پيش كړو چه زه د عمر په لحاظ او تقرير په لحاظ سره په خپل ځان كښې كمې محسوس كوم. نوحضورﷺ اوفرمائيل خوضرورت د دې خبرې دې چه دا خو به يا زه پخپله رسوم يا به ئى ته رسوې. حضرت علىؓ اووئيل كه داسې وى نو زه دا دې لاړم. نبى كريمﷺ اوفرمائيل څه الله ﷻ دې ستا ژبه ثابته اوساتى او ستا زړه له دې هدايت دركړى. بيا ئى خپل لاس د هغوى په خُله كيخودو(٣)خلقو دحضرت على ؓ نه تپوس اوكړو چه د حج په موقع رسول اللهﷺ ته دحضرت ابوبكرؓ سره د كومې خبرې د پاره ليګلې وې؟ هغوى دا پورتنئ څلور خبرې بيان كړې(٤) په مسند احمد وغيره كښې دا روايت په ډيرو طريقو سره راغلې دې په هغې كښې لفظ دا دې چه چا سره معاهده ده اوهغه تركومې مودې پورې ده هم د هغې پورې به وى. او په حديث كښې دى چه هغوى ته خلقو اووئيل چه تاسو حضرت ابوبكرؓ د حج د پاره ليګلې دې افسوس چه دا پيغام هم هغه رسولې وې. حضورﷺ اوفرمائيل چه دا خو به څوك زما دكور والارسوى. په دې كښې دى چه حضرت علىؓ د حضورﷺ په عضبانومې اوښه باندې سور شو تشريف ئى يوړو. هغه ئى په لاركښې اوليدو نو حضرت ابوبكرؓ اوفرمائيل چه سردارئى كه ماتحت؟ وئى فرمائيل چه نه زه خو ماتحت يم. هلته په تلوباندې هغه د حج انتظام اوكړو او د اختر په ورځ حضرت علىؓ خلقو ته د رسول اللهﷺ دا احكام اورسول. بيا دا دواړه د حضورﷺ په خدمت كښې واپس شو. نو مشركانو كښې چه چا سره عام معاهده وه د هغوى د پاره خو څلور مياشتې موده شوه باقى چه چا سره څومره وعده وه هغه هم هغه شان پاتې شوه(٥) اوپه بل روايت كښې دى چه حضرت ابوبكرؓ خوحضورﷺ دحج امير جوړ كړې ليګلې وو.او ماته ئى دسورة براءة څلويښت آياتونه راكړه وئى ليګلم.هغه د عرفه په ورځ د عرفات په ميدان كښې خلقوته خطبه وركړه، بيا ئې حضرت على ؓ ته اوفرمائيل پاسه د سركاررسالتماب ﷺ پيغام خلقو ته واوروه. نو حضرت علىؓ اودريدو اود دې څلويښتو آياتونو تلاوت ئى اوكړو. بيا واپس

---

(١) ترمذى كتاب تفسير القرآن باب ومن سورة التوبة: ٣٠٩٠،وسنده حسن، احمد: ٣/٢١٢.
(٢) احمد: ١/١٥١زوائد عبدالله بن احمد حنبل، مجمع الزوائد: ٧/٣٢.
(٣) احمد: ١/١٦٠.
(٤) ترمذى كتاب تفسير القرآن باب ومن سورة التوبة: ٣٠٩٢وهوصحيح، احمد: ١/١٧٩، حاكم: ٣/٥٢، مسندابى يعلى: ٤٥٢.
(٥) الطبرى: ١٤/١٠٧.

شو او منی کښې په جمرو باندې کانړی اوورول، اوبښ نی حلال کړو او سرئی اوخرولو. بیا ماته معلومه شوه چه دا ټول حاجیان د هغه خطبې په وخت کښې موجود نه وو.پدې وجه زه ډیرو ته خیموته اود اوسیدو خایونوته لاړم او اعلان مې اوکړو. زما دا خیال دې چه هم په دې وجه د خلقو دا گمان پیدا شو دا د لسم تاریخ ذکر دې حالانکه اصل پیغام په نهمه د عرفه په ورځ رسولې وو.

ابواسحاق رحمه الله فرمائی چه مادابوجحیفه رحمه الله نه تپوس اوکړوچه حج اکبر کومه ورځ ده؟ هغه اوفرمائیل د عرفې ورځ. ما ونیل چه دا ته د خپل خان نه وائې یا د صحابه کرامو رضی الله عنهم نه دې اوریدلی دی. ونی فرمائیل هر څه هم دغه دی. عطاء رحمه الله هم دا فرمائی. حضرت عمر رضی الله عنه هم دا فرمائی او په دې ورځ دې څوك روژه نه ساتی. راوی وائی ما د خپل پلارنه پس حج اوکړو مدینې ته اورسیدم او تپوس مې اوکړو چه دلته نن صبا د ټولونه افضل څوك دې؟ خلقو ونیل حضرت سعید بن مسیب رضی الله عنه دې. زه د هغوی په خدمت کښې حاضرشوم او اومې ونیل چه ما د مدینې والا نه تپوس اوکړو چه نن صبا د ټولونه افضل څوك دې؟ نو هغوی ستاسو نوم واخستو نو زه تاسو له راغلم. دا اوفرمائې چه د عرفې د ورځې باره کښې تاسو څه فرمائې؟ هغه ونیل زه تاته د خپل خان نه سل درجې اوچت سړې ښایم. هغه عمر رضی الله عنه یا ابن عمر رضی الله عنه دې هغوی به دې ورځې د روژې نه منع فرمائیله. اوهم دغه ورځ ته به نی حج اکبر ونیل. (ابن ابی حاتم وغیره) نورو هم ډیرو بزرگانو دا فرمائیلی دی چه د حج اکبر نه مراد د عرفه ورځ ده. په یومرسل حدیث کښې دی چه هغوی په خپله د عرفه په خطبه کښې فرمائیلي وو هم دا دحج اکبر ورځ ده(۱) دویم قول دا دې چه دې نه مراد د لوئ اختر ورځ ده. حضرت علی رضی الله عنه د لوئ اختر په ورځ په خپل سپین خچر باندې سور روان وو چه یو سړې راغلو او واگه نی اونیوله او هم دا تپوس نی اوکړو ونی فرمائیل چه د حج اکبر ورځ هم د نن ورځ ده واگه پریږده. د عبدالله بن ابی اوفی هم دا قول دې. حضرت مغیره ابن شعبه رضی الله عنه په خپله د اختر خطبه کښې اوفرمائیل هم د نن ورځ یوم الاضحی ده. هم نن ورځ یوم النحر ده هم نن د حج اکبر ورځ ده. د ابن عباس رضی الله عنه نه هم دا روایت دې. نور هم ډیر خلق هم دې طرف ته تلی دی چه د حج اکبر ورځ د لوئ اختر ورځ ده. د امام ابن جریر رحمه الله هم دا قول خوښ دې. د صحیح بخاری په حواله سره اول حدیث تیرشوې چه حضرت ابوبکر رضی الله عنه اعلان کونکی منی ته د اختر په ورځ لیگلي وو.په ابن جریر کښې دی رسول الله ﷺ په حجة الوداع کښې جمرو سره په لسم تاریخ ذدی الحجه حصار شو او ونی فرمائیل هم دغه ورځ د حج اکبر ده. او په روایت کښې دی چه د هغوی د اوښې رنگ سور وو حضور ﷺ د خلقو نه تپوس اوکړو چه پیژنئی نن د څه ورځ ده؟ خلقو ونیل د قربانئی ورځ ده. هغوی ﷺ اوفرمائیل رښتیا دی هم دا د حج اکبر ورځ ده(۲) او په روایت کښې دی چه حضور ﷺ په اوښه باندې وو خلقو د هغې پیزوان نیولي وو. حضور ﷺ د صحابه کرامو رضی الله عنهم نه تپوس اوکړو پته ده چه نن د څه ورځ ده؟ مونږ ټول په دې خیال چپ پاتې شو چه کیدې شی چه د دې څه بل څه نوم اوښائی. حضور ﷺ اوفرمائیل چه دا نن د حج اکبر ورځ نه ده؟ او په روایت کښې دی چه خلقو د هغوی ﷺ د سوال په جواب کښې اوونیل چه دا د حج اکبر ورځ ده.(۳)سعید بن مسیب رحمه الله فرمائی د اخترنه پس ورځ ده. مجاهد رحمه الله وائی د حج د ټولو ورځو نوم هم دغه نوم دې. سفیان رحمه الله هم دا فرمائی لکه څنگه چه یوم جمل او یوم صفین د دې جنگونو د ټولو ورځو نوم دې هم داسې دا هم دې. د حضرت حسن بصری رحمه الله نه چه کله دا تپوس اوشو نو هغوی اوفرمائیل چه تاسو دې نه څه غوارئی داخو هغه کال کښې وو په کوم چه حضرت ابوبکر رضی الله عنه د حج امیر وو. ابن سیرین رحمه الله هم د دې سوال په جواب کښې فرمائی دا هغه ورځ

---

۱) صحیح بخاری کتاب الحج باب الخطبة ایام منی تحت، رقم:۱۷٤۲، ابوداؤد:۱۹٤٥، ابن ماجه:۳۰۵۸.
۲) الطبری: ۱۲٥/۱٤.
۳) ترمذی کتاب الفتن باب ماجاء فی تحریم الدماء والاموال:۲۱۵۹وسنده حسن، ابن ماجه:۳۰۵۵.

وه په کومه چه د رسول الله ﷺ او عامو خلقو حج اوشو.

اِلَّا الَّذِیۡنَ عٰهَدۡتُّمۡ مِّنَ الۡمُشۡرِكِیۡنَ ثُمَّ لَمۡ

بغير | دهغه کسانونه | چې تاسو وعده کړې وه دهغوئ سره | دمشرکانونه | بيائې نه دي کړې

خوهغه کسان (د عذاب نه بچ دی) چه په مشرکانو کښې ئې تاسو سره معاهده کړې وی او (دمعاهدې

یَنۡقُصُوۡكُمۡ شَیۡـًٔا وَّلَمۡ یُظَاهِرُوۡا عَلَیۡكُمۡ اَحَدًا فَاَتِمُّوۡۤا

کمې تاسو سره | هيڅ قدرله | اونۀ ئې مدد کړې دې | ستاسو خلاف | دهيچا سره | نوپوره کړئ

کولونه پس ئې) تاسو سره هيڅ څه کمې نه وی کړې اونه ئې ستاسو خلاف چاته مدد ورکړې وی.نود داسې

اِلَیۡهِمۡ عَهۡدَهُمۡ اِلٰی مُدَّتِهِمۡ ؕ اِنَّ اللّٰهَ یُحِبُّ الۡمُتَّقِیۡنَ ۝

هغوئ سره | اوعده د هغوئ | دنيتې دهغوئ پورې | بيشکه الله | خوښوی | پرهيزګاران

خلقو سره د هغوی معاهده د هغوی د نيتې پورې پوره کړئ بيشکه الله د معاهدو ماتولونه ځان ساتونکی کسان خوښوی

**قوله تعالى:: فَاَتِمُّوۡۤا اِلَیۡهِمۡ عَهۡدَهُمۡ اِلٰی مُدَّتِهِمۡ ؕ**

**دمعاهدينوسره معاهده سرته اورسوئی::** اول چه کوم احاديث بيان شوی دی دهغې اود دې آيت مضمون يودې.دې نه واضحه شوه چه چا سره مطلقًا معاهده شوې وه هغوی ته خو څلور مياشتې مهلت ورکړې شو په دې کښې چه هغوی خپل څه کوی اودې کړې. او چا سره چه د څه مودې پورې معاهده شوې ده هغه تولې معاهدې ثابتې دی په دې شرط چه هغه خلق دمعاهدې په شرطونو قايم وی. نه مسلمانانو ته پخپله تکليف رسوی اونه دهغوی د دښمنانو سره کمك او امداد کوی. الله ﷻ د وعدې پوره کونکوسره محبت ساتی.

فَاِذَا انۡسَلَخَ الۡاَشۡهُرُ الۡحُرُمُ فَاقۡتُلُوا الۡمُشۡرِكِیۡنَ حَیۡثُ

نوهرکله چې اتيرې شی | مياشتې | حرامې | نوقتل کړئ | مشرکان | هرځائې کښې چې

کله چه معززې مياشتې تيرې شی نوچه په کوم ځائې کښې مشرکان بيا مومئ نوهغوی قتلوئ

وَجَدۡتُّمُوۡهُمۡ وَخُذُوۡهُمۡ وَاحۡصُرُوۡهُمۡ وَاقۡعُدُوۡا لَهُمۡ

بيامومئ تاسو هغوئ لره | اونيسئ هغوئ | اوقيديان کړئ هغوئ | اوکينئ | هغوئ ته

اودوی نيسئ او قيديان کوئ ئې او په هره مورچه (د دوی د مقابلې دپاره) کينئ

كُلَّ مَرۡصَدٍ ۚ فَاِنۡ تَابُوۡا وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتَوُا

دګيريدو په ځائې کښې | انو که چرې توبه اوويسته هغوئ | اوقائم ئې کړو مونځ | اوورئې کړو

نو که دوی (د شرك نه) توبه ويستله او مونځ (د شريعت دتعليماتو مطابق) قائموی او زکاة ورکوی

الزَّكٰوةَ فَخَلُّوۡا سَبِیۡلَهُمۡ ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوۡرٌ رَّحِیۡمٌ ۝

زکاة | انو خالی کړئ الاره دهغوئ | بيشکه الله | بښونکې | امهربانه دې

نود دوی لار پريږدئ (څه تعرض ورته مکوئ) بيشکه الله بښونکې اومهربان دې

قوله تعالى: : فَإِذَا انسَلَخَ الأَشْهُرُ الْحُرُمُ
دجهاد اوحرمت والا میاشتې :دحرمت والا دمیاشتو نه مراد دلته څلورمیاشتې دی.دکوموذکر چه آیت (مِنْهَآ أَرْبَعَةٌ حُرُمٌ )کښې دې.نود هغوی په حق کښې د آخری حرمت والا میاشت د محرم الحرام ده. ابن عباس، اوضحاك نه هم دا روایت دې خو په دې کښې لږ شان تامل دې بلکه دلته د دې نه مراد هغه څلورمیاشتې دی په کوموکښې چه مشرکانوته پناه ملاوشوې وه اوچه د دې نه پس به تاسو سره جنګ وی. نوپخپله هم په دې سورت کښې په بل آیت کښې د دې بیان راځی. فرمائی چه د دغه څلورو میاشتونه پس مشرکانوسره جنګ اوکړئی هغوی قتل کړئی هغوی راګیرکړئی چرته هم چه وینئی. نودا عام دې اومشهور دادې چه داخاص دې په حرم کښې جنګ نه شی کیدې.لکه چه ارشاددې(وَلَا تُقَاتِلُوهُمْ عِندَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ)دمسجدحرام حدودوکښې هغوی سره جنګ مه کوئې ترهغه وخته پورې چه هغوی پخپله جنګ شروع نه کړی.که چرې دوی هلته تاسو سره جنګیږی نوتاسو ته هم هغوی سره دجنګ کولواجازت دې که غوارئی نوقتل ئی کړئی اوکه غوارئی نوقیدئی کړئی.اود هغوی قلعه ګانې راګیرې کړئی او هغوی ته په هره کنده کښې پټ کینئی او هغوی په نښه کړئی او وئی وهئی. یعنی صرف دا نه چه ملاو شی نو جنګ اوکړئی بلکه په هغوی حمله اوکړئی د هغوی لارې بند کړئی او هغوی مجبوره کړئی چه یا اسلام راوړی او یا جنګ اوکړی.د دې د پاره ئی اوفرمائیل چه که هغوی د مونځ پابندی اوکړی زکوة ورکړی نو بې شکه د هغوی لارې کولاوکړئی اود هغوی نه تنګی لرې کړئی. د زکوة د مانعینو سره د جهاد کولو دلیل حضرت ابوبکر صدیق د دې قسم آیاتونونه اخستې وو چه جنګ به دې شرط باندې حرام دې چه په اسلام کښې داخل شئې اود اسلام واجبات په ځائې راوړئی. په دې آیت کښې ارکان اسلام په ترتیب سره بیان فرمائیلی دی. اعلی بیا ادنی نو د کلمه شهادت نه پس د اسلام د ټولونه لوئی رکن مونځ دې کوم چه د الله عزوجل حق دې. د مانځه نه پس زکوة د کوم نفع چه فقیرانو مسکینانو او محتاجانو ته رسی اود مخلوق یو زبردست حق کوم چه د انسان په غاړه دې ادا کیږی. هم دغه وجه ده چه د مانځه سره الله د زکوة بیان فرمائی. په بخاری او مسلم شریف کښې دی رسول الله فرمائی ماته حکم شوې دې چه خلقو سره جهاد جاری ساته ترکومې چه هغوی دا ګواهی ورنه کړی چه د الله نه بغیر څوک د عبادت لائق نشته او دا چه محمد د الله رسول دې او مونځ قایم کړی او زکوة ورکړی. الخ.(١)

**چې څوک زکوة نه وی دهغه مونځ هم نشته:**:حضرت عبدالله بن مسعود فرمائی تاسو ته د مونځونو قایمولو اوزکوة ورکولو حکم کړې شوې دې. څوک چه زکوة نه ورکوی د هغوی مونځ هم نشته. حضرت عبدالرحمن بن زید بن اسلم فرمائی الله هیڅ کله د چا مونځ نه قبلوی ترکومې چه هغه زکوة ادا نه کړی. الله دې په حضرت ابوبکر صدیق باندې رحم اوکړی د هغوی پوهه د ټولونه زیات شوې وه چه هغه د زکوة دمنکرینو سره جهاد اوکړو. په مسند احمد کښې دی رسول الله فرمائی ماته د خلقو سره دجهاد حکم راکړې شوې دې ترکومې چه هغوی داګواهی ورنه کړی چه نشته دې لائق دعبادت بغیرد الله نه چه برحق دې او حضرت محمد د الله رسول دې. کله چه هغوی د دې دواړو خبرو اقرار اوکړی او زمونږ قبلې طرف ته مخ کړی زمونږ حلاله اوخوری زمونږ په شان مونځونه اوکړی نو په مونږ باندې د هغوی وینه او مال حرام دې. مګر د اسلام د حق احکامو د لاندې هغوی ته به هر هغه حق حاصل وی کوم چه د نورو مسلمانانودې اود هغوی په ذمه هر هغه څیز دې کوم چه د

(١) صحیح بخاری کتاب الایمان باب (فان تابوا واقاموا الصلاة واتواالزكوة فخلواسبيلهم...):٢٥، صحیح مسلم:٢٢،

نورو مسلمانانو په ذمه دي[۱] دا روایت په صحیح بخاري شریف او په سنن کښې هم دي سوا د ابن ماجه نه. په ابن جریر کښې دی چه رسول مقبولﷺ فرمائی څوك چه د دنیا نه په دې حال کښې لاړشی چه یوازې د یو الله ﷻ عبادت کوی اوهغه سره څوك نه شریك کوی نو هغه به په دې حال کښې خې چه الله ﷻ به د هغه نه خوشحاله وی.حضرت انس ﷺ فرمائی چه هم دغه د الله ﷻ دین دې هم دا ټولو پیغمبران علیهم السلام راوړې دې اود خپل رب د طرف نه ئې خپلو خپلو امتونو ته رسولې وو. دې نه وراندې چه خبره خوره شی او خواهش اخوا دیخوا شي د هغه صداقت د الله ﷻ په آخری وحې کښې موجود ده. الله ﷻ فرمائی ﴿فَإِن تَابُوا وَأَقَامُوا الصَّلَوٰةَ وَآتَوُا الزَّكَوٰةَ فَخَلُّوا سَبِيلَهُمْ[۲]﴾ نو توبه هم دغه ده چه الله ﷻ یودې برحق دې اود هغه نه علاوه د بل چا د عبادتونونه لاس واخلی د مونځونو او زکوة پابند شی. په آیت کښې دې چه د دې دریوارو کارونو نه پس هغوی ستاسو دینی رونړه دی[۲]ضحاك رحمه الله فرمائی چه دا د تورې آیت دې. دې هغه ټولې معاهدې ختمې کړې کومې چه مشرکانو سره وې.د ابن عباسﷺ قول دې چه د سورة براءة په نازلیدو څلور میاشتې تیریدو نه پس هیڅ قسم معاهده او ذمه پاتې نه شوه.[۳] رومبی شرطونه د برابرئی سره مات کړې شو اوس اسلام او جهاد باقی پاتې شو.

**رسول کریم ﷺ د څلورو تورو سره رالیږلې شوې وو::** حضرت علیﷺ بن ابی طالب فرمائی الله ﷻ خپل نبیﷺ څلوروتورو سره راولیګلو یوخو دعربو په مشرکانوکښې. فرمائی ﴿فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ حَيْثُ وَجَدتُّمُوهُمْ﴾ مشرکان په جهاد کښې قتل کړئی. دا روایت داسې مختصر دې. زما خیال دې دویمه توره په اهل کتابوکښې. فرمائی ﴿قَاتِلُوا الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ﴾په الله ﷻ وتبارك باندې او د قیامت په ورځ باندې ایمان نه راوړونکی اود الله ﷻ اود هغه د رسول ﷺ حرام کړې شوی حرام نه منل اود الله ﷻ رښتونې دین نه قبلونکی کوم اهل کتاب دی هغوی سره جهاد کوه ترهغه وخته پورې چه هغوی په ذلت سره جزیه ورکولو ته تیار نه شی. دریمه توره په منافقانوکښې فرمائی ﴿يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ جَاهِدِ الْكُفَّارَ﴾ اې نبیﷺ! کافرانو او منافقانوسره جهاد کوه. څلورمه توره په باغیانوکښې ارشاد دې﴿ وَإِن طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا ﴾ که د مسلمانانو په دوو ډلوکښې جنګ اوشی نو په هغوی کښې صلح اوکړه اوکه بیا هم یوه ډله بله ښکته کوی نو دغه باغیانوسره ته اوجنګیږه ترهغه وخته پورې چه هغوی د الله ﷻ حکم ته واپس راوګرځی. د ضحاك او سدی رحمهما الله قول دې چه دا آیت د تورې ایت ﴿فَإِمَّا مَنًّا بَعْدُ وَإِمَّا فِدَاءً﴾سره منسوخ دې یعنی د احسان په توګه یا فدیه اخستو سره کافران قیدیان پریږدئی. قتاده رحمه الله دې برعکس وائی چه روستونې آیت په رومبی آیت سره منسوخ دې.

| وَإِنْ أَحَدٌ مِّنَ |
|---|
| ااوکه یوکس ا د |
| اوکه د مشرکانو نه |
| الْمُشْرِكِينَ اسْتَجَارَكَ فَأَجِرْهُ حَتَّىٰ يَسْمَعَ كَلَامَ اللَّهِ ثُمَّ |
| مشرکانو نه طلب دامان اوکړی ستانه ا نو امان ورکړه هغه ته اتردې اچی واوری اکلام دالله ا بیا |
| یوکس ستا نه پناه اوغوښتله (چه ماته امن راکړه)، نو پناه ورکړه هغه ته تردې چه د الله ﷻ کلام واوری اوبیا ئې |

[۱]صحیح بخاری کتاب ا لصلوة باب فضل استقبال القبلة:۳۹۲، ابوداؤد:۲٦٤۱،ترمذی:۲٦۰۸، احمد:۱۹۹/۳،ابن حبان:۵۸۹۵.
[۲] ۹/التوبة: ۱۱.
[۳] الطبری: ۱۳۳/۱٤.



| لَا يَعْلَمُوْنَ۝ | قَوْمٌ | بِاَنَّهُمْ | ذٰلِكَ | مَاْمَنَهٗ | اَبْلِغْهُ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې علم نهٔ لري | يو قوم دي | په سبب ددې چې دوئ | دا کار | خائې دامن دهغه ته | اورسوه هغه |

خپل د امن خائې ته اورسوه دا (پناه ورته ښکه ورکوه) چه دوی داسې قوم دې چه نه پوهيږي

قوله تعالیٰ:: فَاَجِرْهُ حَتّٰى يَسْمَعَ كَلٰمَ اللّٰهِ

**دکافرانودسفیرانو اوقاصدانو احترام:-** الله ﷻ خپل نبیﷺ ته حکم فرمائی د کوموکافرانوسره د جهاد چه تاته حکم درکړې شوې دې که په هغوی کښې څوك تانه امن غواړی نو ته د هغوی خواهش پوره کړه هغه ته امن ورکړه تردې چه هغه قرآن کريم واوري. ستا خبرې واوری د دين تعليم معلوم کړی د الله ﷻ حجت پوره شی. بیا ئې په خپل امن کښې هغه خپل وطن ته بې ويرې اورسوه. چه دې د خپل امن خائې ته اورسی نو ممکن دی چه په سوچ او سمجهه سره حق قبول کړی. دا ددې د پاره چه دا بې علم خلق دی دوی ته خپل معلومات پوره وراورسوه اود الله ﷻدعوت دهغه د بندیګانو غوږونوته وراورسوه. مجاهد رحمه الله فرمائی چه څوك تاله د دينی خبرو اوريدو دپاره راشی که هرڅوك ولې نه وی هغه په امن کښې دې تر دې چه د الله ﷻ کلام واوری او بيا چه د کوم خائ نه راغلې دې هلته په امن سره اورسی[1] ځکه چه پيغمبرﷺ دکوم دين د پوهه کولو د پاره راغلې او کوم پيغام ئې ورکولو هغه به امن ورکولو. د حديبيه په کال هم دغه اوشودقريشو چه څومره قاصدان راغلل هغوی ته هيڅ خطره نه وه. عروه بن مسعود مکرز بن حفص سهيل بن عمرو وغيره يوبل پسې راتلل. دلته په راتلو باندې هغوی ته هغه شان ښکاره شو کوم چه د قيصر او کسری په دربارکښې هم نه وو. هغوی خپل قوم ته هم دغه اووئيل نو دا څيز هم د ډيرو خلقو د هدايت ذريعه جوړه شوه. دمسيلمه کذاب مدعی نبوت قاصد کله دحضور اکرمﷺ دربار ته اورسيدو نو حضورﷺ دهغه نه تپوس اوکړو چه آيا ته د مسيلمه درسالت قائل ئې؟هغه وئيل او.حضورﷺ اوفرمائيل که د قاصدانو قتل کول زما په نيز ناجائزنه وی نو ما به ستا سټ الوزولې وو. آخر هم دا سړې د حضرت ابن مسعودﷺ د امارت په زمانه کښې کوفه کښې قتل کړې شو. ده ته به ئې ابن النواحه وئيل.کله چه هغوی ته معلومه شوه چه دادمسيلمه منونکې دې نوحضورﷺ هغه راوغوښتو او ورته ئې اوفرمائيل اوس ته قاصد نه ئې او اوس ستا سټ وهلو کښې هيڅ څيز منع کونکې نشته. هغه قتل کړې شو.په هغه دې دالله ﷻ لعنت وی[2]الغرض دا دارالحرب نه چه کوم قاصدان راغله يا سوداګر راغله ياد صلح غوښتونکی راغله يا په خپل مينځ کښې د اصلاح په غرض راغله يانی جزيه راوړه حاضر شو نو امام يا نائب امام هغوی ته امن ورکړو نو ترڅومې چه هغوی په دارالاسلام کښې وو او تر کومې خپل وطن ته نه وورسيدلې هغه قتل کول حرام دی.علماء فرمائی چه داسې سړې په دارالاسلام کښې ترکاله پورې مه ساتئې زيات نه زيات دوه څلورمياشتې دلته حصاريدې شی. بيا د څلورو مياشتو نه زيات او د پوره کال دوه قوله د امام شافعی رحمه الله وغيره علماؤ دی.

**حربی کافر په دارالاسلام کښې څومره وخت تيرولې شی؟**

**مسلك حنفی:-** حربی کافر به په دارالاسلام کښې زيات نشی پريخودې بلکه چې څنګه هغه خپل حاجت پوره کړی نو د دالاسلام نه د وتلو حکم به ورته کولې شی اوکه دارالاسلام ته د داخليدو نه پس ئې يو کال تيرکړو نو دی ذمی اوګرځيدلو ده باندې به خراج مقرر کولې شی[3]

[1] الطبری:۱٤/ ۱۳۹.

[2] ابوداؤد کتاب الجهاد باب فی الرسل:۲۷٦۱وسنده حسن، ۲۷٦۲، السنن الکبریٰللنسائی:۸٦۷۵،احمد:۱/ ۳۸۳، ابن حبان: ٤۸۷۹، مشکل الآثار:۲۸٦۲.

[3] (احکام القرآن للجصاص (۳/ ۱۲۵)_

| كَيْفَ | يَكُوْنُ | لِلْمُشْرِكِيْنَ | عَهْدٌ | عِنْدَ اللّٰهِ | وَعِنْدَ رَسُوْلِهٖٓ | اِلَّا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| څه رنګ ا به وي ا | دپاره دمشرکانو | اوعده | ا په نز دالله ا | اوپه نز درسول دهغه | | امګر |

د الله او د هغه د رسول سره به کړې د مشرکانو په معاهده باندې څه اعتبار نشته ا البته کوم کسان چه د مسجد

| الَّذِيْنَ | عٰهَدْتُّمْ | عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ | فَمَا | اسْتَقَامُوْا |
|---|---|---|---|---|

هغه کسان ا چې وعده کړې وه تاسو دهغوئ سره ا په خوا دمسجد حرام کښې انو تر څو چې انيغ چليږي هغوئ

حرام سره نزدې ورسره تاسومعاهده کړې وي ا نو چه تر څو پورې دوی په خپله معاهده ټينګ وي اوهغه

| لَكُمْ | فَاسْتَقِيْمُوْا | لَهُمْ | اِنَّ اللّٰهَ | يُحِبُّ | الْمُتَّقِيْنَ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|

ستاسو سره په وعده کښې ا تاسوهم نيغ چليږئ ا دهغوئ سره ا بيشکه الله خوښوی ا متقيان خلق

ثې نه وي ماته کړې نو تاسو هم په خپله معاهده هغوی سره ټينګ اوسيږئ او بيشکه الله ﷻ پرهيزګاران خوښوي

قوله تعالى: فَمَا اسْتَقَامُوْا لَكُمْ فَاسْتَقِيْمُوْا لَهُمْ

**مسلمانان دې په مشروط توګه د وعدې پابندی کوی:-** دپورتنی حکم حکمت بيانولې شی چه د څلورو مياشتو پورې داجازت ورکولو وجه دا ده چه هغوی خپل شرك او کفر پريخودونکي او په خپلو معاهدو باندې قائم پاتې کيدونکې نه دی او چه د حديبيه صلح ترکومې پورې د هغوی د طرف نه ماته نه شی نوتاسو نی هم مه ماتونی. دا صلح د لسوکالو پورې شوې وه.حضورﷺ د ذی القعدې مياشت۶ﻫ نه دا معاهده پوره کوله تردې چه د قريشو د طرفه معاهده ماته کړې شوه. د هغوی حليف بنوبکر د رسول اللهﷺ حليف خزاعه باندې حمله اوکړه بلکه په حرم کښې هم هغوی قتل کړل په دې بنا په رمضان ۸ﻫ کښې حضورﷺ په هغوی باندې حمله اوکړه. الله ﷻ مکه دحضورﷺ په لاس فتح کړه او هغه نی د نبی کريمﷺ په لاس کښې کړه.(ولله الحمدوالمنة) خوحضورﷺ سره دغلبې اوقدرت په هغوی کښې چه چا اسلام قبول کړې نه وو ټول آزاد کړل هم دغه خلقو ته طلقاء وائی. دا تقريباً دوه زره وو چه په کفرباندې باقی پاتې شو او اخواديخوا شو نو رحمة للعالمين ټولوته عام پناه ورکړه اوهغوی ته په مکه کښې د راتلو او په خپلوکوروکښې د اوسيدو اجازت ورکړو چه تر څلورو مياشتو پورې چه هغوی چرته تلل غواړی تلې شی. هم په دوی کښې صفوان بن اميه او عکرمه بن ابی جهل وغيره وو بيا الله ﷻ د هغوی رهبری اوکړه اوهغوی ته نی اسلام ورنصيب کړو. الله ﷻ په خپله هره اندازه کولوکښې او هر يو کار کولو کښې د تعريف لائق دې.

| كَيْفَ | وَاِنْ | يَّظْهَرُوْا | عَلَيْكُمْ |
|---|---|---|---|
| اڅرنګ به وي ا | حال دا چې که چرې ا | غلبه بيا مومی هغوئ | ا په تاسو باندې |

ادوی به څنګه تاسو سره په معاهده باندې ټينګ پاتې شی که دوی په تاسو باندې

| لَا يَرْقُبُوْا | فِيْكُمْ | اِلًّا | وَّلَا ذِمَّةً | يُرْضُوْنَكُمْ |
|---|---|---|---|---|

لحاظ نه کوی هغوئ ا په حق ستاسو کښې ا د خپلولئ ا اونه دوعدې دذمه وارئ ا هغوئ رضاکوی تاسو

غالب شی نو ستاسو د خپلولئ او د معاهدې هيڅ پرواه نه ساتی دوی ( په ظاهری خبرو) تاسو راضی

| بِاَفْوَاهِهِمْ | وَتَاْبٰى | قُلُوْبُهُمْ | وَاَكْثَرُهُمْ | فٰسِقُوْنَ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| په خلوخپلو سره | اوانکارکوی | ازړونه دهغوئ | اوزيات خلق دهغوئ | افاسقان دی ا |

کوی خو د دوی زړونه (ستاسو د راضی کولونه) انکار کوی او په دوی کښې زيات خلق کافران دی

قوله‌تعالى:: لَا يَرْقُبُوْا فِيْكُمْ اِلًّا وَّلَا ذِمَّةً ط

**کافران د وعدې پابند نه دي د وسائلو په انتظاردي:-** الله ﷻ دکافرانو دمکراوفریب اود هغوی د زړه د دښمنۍ نه مسلمانان خبروي دې د پاره چه هغوی د دوی دوستۍ په زړه کښې اونه ساتي اونه د هغوی په قول او اقرار باندې تسلي اوکړي د هغوی کفر اوشرك هغوی د وعدو په پابندۍ باندې نه پريږدي. دوی خو د وخت په انتظاردي چه که د دوی طاقت پیدا شو نو تابه اوچیچي نه خپلولو ته ګوري او نه وعدوته ګوري دوی نه چه څه کیدې شي هغه تکلیف تاته درکوی او خوشحالیږي. **(ال)**معنی ده خپلولي. او د ذمة معنی عهدوپیمان ده . د ابن عباس ﷺ نه روایت دې[1] اوحضرت حسان ﷺ په شعر کښې هم دی دا معنی کړې ده چه هغوی دخپلې غلبې په وخت کښې د الله ﷻ هم لحاظ نه کوی اونه دبل چا او هم دغه لفظ **(ال)** **(ایل)** خور شولکه جبرائیل میکائیل او اسرافیل کښې ونیلی یعنی د دې معنی هم الله ﷻ ده (لَا يَرْقُبُوْا فِيْكُمْ)خو رومبی قول ظاهر اومشهور دې اوداکثرو مفسرینوهم دا قول دې. مجاهد رحمه الله وائي مراد ترې وعده ده. د قتاده رحمه الله قول دې چه مراد ترې قسم دې.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اِشْتَرَوْا بِاٰيٰتِ | اللّٰهِ | ثَمَنًا قَلِيْلًا | فَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِهٖ ط | اِنَّهُمْ |
| واغستوهغوئ په بدله دایتونود | الله کښې | اقیمت لږ | انومنع کوی خلق دلارې دالله نه | ا بیشکه هغوئ چې دی |
| دوی د الله ﷻ په ایاتونو باندې | (د دنیا) | لږ قیمت اخلی. او | (خلق) د الله د لارې نه منع کوی | بیشکه دوی |
| سَآءَ | مَا | كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ۝ | لَا يَرْقُبُوْنَ | فِيْ مُؤْمِنٍ اِلًّا |
| اوبریدې | اهغه | اچي وو هغوئ اچي کول به ئي | انه کوی لحاظ هغوئ | اپه حق دمومن کښې ا دخپلولئ |
| چه کوم عمل کوی هغه ډیر بددې | | دوی د یو مؤمن په حقله د خپلوئ | او معاهده هیڅ پرواه نه ساتي | |
| وَّلَا ذِمَّةً ط | وَاُولٰٓئِكَ | هُمُ | الْمُعْتَدُوْنَ۝ | فَاِنْ تَابُوْا |
| اونه دوعدې دذمه وارنی | اوداکسان | اهم دوئ | ازیاتې کونکی دی | انوکه چرې اتوبه اوویسته هغوئ |
| اوهم دا (چه نه د خپلولئ خیال ساتي اونه د معاهدې) | | | دحد نه تیریدونکی دی | نوکه دوی توبه ویستله |
| وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ | وَاٰتَوُا الزَّكٰوةَ | فَاِخْوَانُكُمْ | فِي الدِّيْنِ ط | |
| اوقائم ني کړومونځ ا | اوورنې کړوزکاة ا | نو رونړه ستاسو دی | اپه دین کښې | |
| اومونځ قائموی او زکاة ورکوی نو دا (خلق) ستاسو دینی (اسلامی) رونړه دی(دوی سره د رونړو سلوک کوئ) | | | | |
| وَنُفَصِّلُ | الْاٰيٰتِ | لِقَوْمٍ | يَّعْلَمُوْنَ۝ | |
| اوواضحه بیانوومونږ ا | آیتونه | ادپاره دهغه قوم | اچي پوهیږی ا | |
| اومونږ د هغه قوم دپاره په تفصیل سره ایاتونه بیانوو څوک چه پوهیږی | | | | |

قوله‌تعالى:: فَاِنْ تَابُوْا

**که مشرک توبه اوکړي او رښتونې مسلمان جوړشي نوستاسودینی رونړه دي:-** دمشرکانو مذمت کولو سره مسلمانانوته دجهاد ترغیب ورکولې شي چه دې کافرانو خسیس دنیا د نفیس آخرت په بدله کښې خوښه کړې ده. پخپله د الله ﷻ د لارې نه منع شوی دی اومؤمنان هم د ایمان نه بندوی. د دوی اعمال

[1] الطبری: ۱٤٦/۱٤.

ويرخراب دي.اودوي خو مؤمنانوته نقصان رسولو پورې اينختې دي. دوى ته نه د خپلولئ خيال دئ اونه د معاهدې.دوى خو دحد نه زياتې كونكى دي.او اوس هم ربښتونې توبه مونځ اود زكوة پابندئ دوى ستاسو رونړه جوړولې شي.د بزار په حديث كښې دي چه څوك دنيا په داسې حال كښې پريږدى چه د الله ﷻ عبادتونه په خلوص سره كوى هغه سره څوك شريك نه جوړوى اود مونځ زكوة پابند وى نو الله ﷻ به ده سره په خوشحالئ سره ملاويږى.هم دغه د الله ﷻ هغه دين دې كوم چه پيغمبرانو عليهم السلام راوړلو او هم د دې تبليغ هغوى د الله ﷻ د طرف نه كولو.دې نه وړاندې چه خبرې خورې شى او خواهشونه زيات شى د دې تصديق په كتاب الله كښې موجود دې. يعنى كه هغوى توبه كړى او بتان او بت پرستى پريږدى او مونځ گذار او زكوة وركونكې جوړشى نو ته د هغوى لارې پريږده.([1])او په بل آيت كښې دى چه دا خوبيا ستاسو دينى رونړه دى([2]) امام بزار رحمه الله فرمائى چه زما په خيال كښې خو مرفوع حديث په هغه ځائ ختم دې چه الله ﷻ دوى نه رضا دې او ملاويږى به، ددې نه پس كلام د راوى ربيع بن انس رحمه الله دې والله اعلم.

| |
|---|
| وَاِنْ نَّكَثُوْٓا |
| اوكه چرې ا مات كړل هغوئ ا |
| اوكه دوى د خپلې وعدې نه |
| اَيْمَانَهُمْ مِّنْ بَعْدِ عَهْدِهِمْ وَطَعَنُوْا فِيْ دِيْنِكُمْ |
| قسمونه خپل ا روستو ادوعدې خپلې نه ا اوعيبونه ئې بيان كړل اپه دين ستاسو كښې ا |
| خپل قسمونه مات كړل (اوپه هغې باندې ئې وفا اونكړله) او ستاسو په دين كښې ئې عيبونه لټول |
| فَقَاتِلُوْٓا اَئِمَّةَ الْكُفْرِ ۙ اِنَّهُمْ لَآ اَيْمَانَ |
| پس اوجنگيږئ ادمشرانو ا دكفر سره ابيشكه دوئ چې دى انشته ا اعتبار دقسمونو ا |
| نو په دې صورت كښې، تاسو د كفر امامان قتل كړئ ځكه چه د دوى په قسمونو څه اعتماد نشته |
| لَهُمْ لَعَلَّهُمْ يَنْتَهُوْنَ ﴿۱۲﴾ |
| ددوئ ابنائيږى چې دوئ ابه منع شى ا |
| كيدې شى (چه په دې طريقه) دوى منع شى (دخپل كفرنه) |

**قوله تعالى:: وَاِنْ نَّكَثُوْٓا اَيْمَانَهُمْ**

**بعضې وعده ماتونكوته سخت جواب وركول:-** كه دا مشركان خپل قسمونه مات كړى او وعده خلافى او معاهدې نه روگردانى اوكړى اوستا په دين باندې اعتراض كوى نو ته د هغوى د سرونه مات رامات كړه. د دې د پاره علماؤ فرمائيلى چه څوك حضور ﷺ ته كنځلې كوى او په دين كښې عيبونه لټوى د ده ذكر په اهاهنت سره كوى نو هغه قتل كړئ.دهغوى قسمونه صرف بې اعتباره دى. هم دغه طريقه د هغوى دكفراودښمنئ نه دبندولو ده.ابوجهل،عتبه، شيبه اوامية وغيره ټول دكفر سرداران وو. حضرت سعدبن ابى وقاص رضي الله عنه د خوارجو په څه كسانو تيريدو نو يو خارجى اووئيل چه دا د كفر د مشرانو نه يودې. هغوى اوفرمائيل چه ته دروغژن نې زه خود هغوى نه يم چا چه د كفر مشران قتل كړې وو.

---

[1]) ۹/التوبة:۵.

[2]) حاكم:۲/۳۳۱-۳۳۲.



حضرت حذیفه ﷺ فرمائی چه د دې ایت والا لا تر اوسه نه دی قتل شوی[۱] دحضرت علی ﷺ نه هم داسې روایت دې. صحیح دادی چه آیت عام دې اګر چې د نزول د سبب په اعتبار دې نه د قریشو مشرکان مراد دی. خو حکما دا دوی او ټولو ته شام دې. والله اعلم.حضرت ابوبکر ﷺ د شام طرف ته لښکر اولیګلو نو هغوی ته نی اوفرمائیل چه تاسو ته به په هغوی کښې څه خلق داسې ملاویږی چه هغوی به سرونه خرولې وی نو تاسو هم د دغه شیطانانو په سرونو تورې اوچلونی او خپل ځای ته نی اورسونی. والله په دوی کښې د هر یوقتل ماته د اویاؤ کسانود قتل کولونه ډیر خوښ دی څکه چه د رب فرمان دې د کفراامامان قتل کړئی[۲]

أَلَا تُقَاتِلُونَ قَوْمًا نَّكَثُوا

آیا نه جنګیږئ تاسو | دهغه قوم سره چې مات کړل هغوئ

تاسو ولې د داسې قوم سره نه جنګیږئ

أَيْمَانَهُمْ وَهَمُّوا بِإِخْرَاجِ الرَّسُولِ وَهُم بَدَءُوكُمْ

قسمونه خپل | اوقصد ئې اوکړو | په ویستلو | د رسول | اوهغوئ | شروع کړی ده تاسو سره

چه هغوی خپل قسمونه مات کړی دی او د پیغمبر د ویستلو قصد ئې کړې وو اوهغوی په اول ځل تاسو

أَوَّلَ مَرَّةٍ أَتَخْشَوْنَهُمْ فَاللَّهُ أَحَقُّ أَن تَخْشَوْهُ

په اول ځل | آیا تاسو یریږئ دهغوئ نه | نو الله | زیات حقدار دې | چې تاسواویریږئ دهغه نه | که چرې

شروع کړې ده آیا تاسو د دوی نه ویریږئ (د دوی په مقابله کښې) الله ﷻ زیات حقدار دې چه تاسو

إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ قَاتِلُوهُمْ يُعَذِّبْهُمُ اللَّهُ بِأَيْدِيكُمْ

یئ تاسو مومنان | اوجنګیږئ دهغوئ سره | عذاب به ورکړی هغوئ ته الله | په لاسونو ستاسو |

ترې اویریږئ که تاسو مؤمنان ئې (نو د دوی نه مه یریږئ بلکه) دوی سره جنګیږئ الله به ستاسو په لاسونو

وَيُخْزِهِمْ وَيَنصُرْكُمْ عَلَيْهِمْ وَيَشْفِ صُدُورَ قَوْمٍ

اوذلیله به کړی هغوئ | اوامداد به اوکړی ستاسو | خلاف دهغوئ | اوبخ به کړی | سینې | دقوم

دوی ته عذاب ورکړی او (د دوی په مقابله کښې به) ستاسو مدد اوکړی اود مؤمن قوم زړونو ته به

مُّؤْمِنِينَ وَيُذْهِبْ غَيْظَ قُلُوبِهِمْ وَيَتُوبُ اللَّهُ عَلَىٰ مَن

مومنانو | اولرې به کړی | غصه دزړونودهغوئ | اودرحمت رجوع به اوکړی الله | په هغه چاباندې

شفاء ورکړی اوددوی د زړونو غصه به لرې کړی او الله ﷻ به د هغه چا توبه قبوله کړی د چا توبه

يَشَاءُ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ

چې خوښه ئې شی | الله ﷻ | ابنهٔ پوهه دې | اوصاحب د حکمت دې |

قبلول چه اوغواړی او الله ﷻ پوهیږی اوصاحب د حکمت دې

---

[۱] ایضا: ۲/۳۳۲.

[۲] ابن ابی شیبه: ۷/۱۹۲. (ابن ابی حاتم)

**قوله تعالى:: أَلَا تُقَاتِلُونَ قَوْمًا نَّكَثُوٓا أَيْمَٰنَهُمْ**

**وعده ماتونکی کافرانوسره په سختئی سره مخ شئی:-** مسلمانان په پوره جهاد باندې راضی کولو د پاره فرمائی چه داوعدې ماتونکی اوقسمونه ماتونکی کافران هم دغه دی کوموچه رسول اللهﷺ د وطن نه ویستو کښې پوره ذمه واري اوچته کړې وه. غوښتل ئی چه قیدئی کړی یا ئی قتل کړی یائی د وطن نه اوباسی د هغوی دچل نه د الله ﷻ چل ډیر بهتر وو(۱) صرف د ایمان په وجه ئی دښمنی کوله پیغمبرﷺ او مؤمنان ئی د وطن نه ویستل. چغې به ئی وهلې چه مونږ تا د مکې مکرمې نه اوباسو. د بدئی شروع هم د دوی د طرف نه وه. د بدر په ورځ د لښکر سره راووتل چه معلومه شوه قافله بچ شوه لاړه. نو صرف د فخر او غرور نه رباني لښکر ته ماتې ورکولو په اراده مسلمانانوپسې روان شو. لکه چه پوره واقعه دې نه وړاندې بیان شوې ده. هغوی معاهده ماته کړه او خپلو حلیفانو سره یوځای شو اود رسول اللهﷺ حلیفانوسره ئی جنګ اوکړود بنوبکر ئی د خزاعه چې درسول کریمﷺ حلیفان وو په خلاف امداد اوکړو. د دې وعده خلافئی په وجه حضورﷺ په هغوی باندې حمله اوکړه او د هغوی ئې ښه سر ښکته کړو او مکه ئی فتح کړه. فالحمدلله.

**مسلمانان به دغیرالله نه ویره نه کوی:** فرمائی چه تاسودپلیتوخلقونه ویره کوئی. که چرې تاسو مؤمنان ئی نوستاسو په زړه کښې سوا دالله ﷻ نه د بل چا ویره نه دې کیدل پکار. هم هغه ددې لائق دې چه د هغه نه ایماندار ویرېږی. او په بل آیت کښې دی چه دوی نه مه ویرېږئی صرف هم زما نه ویرېږئی زما غلبه زما سلطنت زما سزا زما قدرت اوزما ملکیت بې شکه د دې قابل دې چه هروخت هر زړه زما د هیبته لړزیږی. ټول کارونه زما په لاس کښې دی چه څه غواړم کولې شم او کوم ئی. زما د رضا نه سوا بل هیڅ هم نه شی کیدې. په مسلمانانو باندې د جهاد د فرضیت راز بیانولې شی چه الله ﷻ قادر ووچه کوم عذاب ئی غوښتلو په دوی باندې رالیګلې شو خود هغه خو... دا ده چه هم ستاسو د لاسه هغوی له سزا ورکړی اود هغوی بربادی تاسو پخپله اوکړئی اوستاسو زړه ښه یخ شی او تاسو ته راحت آرام خوشحالی اوکامرانی حاصله شی. دا خبره څه هغوی سره مخصوصه نه وه بلکه د ټولومؤمنانو د پاره هم ده. خاص کر خزاعه قبیله په کومه چه وعده خلافی کولو سره قریش خپلو حلیفانو سره یو خای شو اوحمله ئی اوکړه د هغوی زړونه به هم هغه وخت یخیږی اود هغوی دورې به هغه وخت وینځلې کیږی چه کله د مسلمانانو د لاسه کافر ښکته شی. په ابن عساکر کښې دی چه کله به حضرت عائشه رضي الله عنها غصه شوه نو حضورﷺ به د هغې پوزه اونیوله او فرمائیل به ئی اې عویش! دا دعا اوکړه ﴿اللهم رب النبي محمد اغفر ذنبي واذهب غيظ قلبي واجرني من مضلات الفتن﴾ اې الله! د محمدﷺ پروردګار زما ګناه اوبښه، او زما د زړه غصه لرې کړه اوماد ګمراه کونکو فتنونه بچ کړه. الله ﷻ پخپلو بندیګانو کښې چه د چا توبه قبلول اوغواړی. قبوله کړی هغه د بندیګانو د هرقسم مصلحتونونه خبر دې په خپلو ټولوکارونوکښې شرعی احکاموکښې اوپه خپلو ټولو حکمونو کښې حکمت والا دې چه څه غواړی کوی چه څه اراده کوی حکم ورکوی او هغه عادل او حاکم دې د ظلم نه پاك دې د یوې ذرې نیکی یا بدی نه ضائع کوی بلکه د هغې بدله په دنیا اوآخرت کښې ورکوی.

| الَّذِينَ | اللَّهُ | وَلَمَّا يَعْلَمِ | أَنْ تُتْرَكُوا | أَمْ حَسِبْتُمْ |
|---|---|---|---|---|
| هغه کسان | الله | اولا نه دی معلوم کړي | اچې تاسو به پرېښودي شئ | ایا ګمان کړي تاسو |
| ایا تاسو خیال کوئ چه تاسو به بغیر د امتحان نه داسي پرېښودي شئ حال دا چه تر اوسه پوري الله په | | | | |

(۱) ۸/الانفال: ۳۰.

| جٰهَدُوۡا | مِنۡكُمۡ | وَلَمۡ يَتَّخِذُوۡا | مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ | وَلَا رَسُوۡلِهٖ |
|---|---|---|---|---|
| چي جهادني كړي | تاسونه | اونه دي نيولي هغوئ | ماسوا دالله نه | اود رسول دهغه نه |

ظاهري علم سره په تاسو كښې هغه خلق نه دي پيژندلي چه جهاد ئي كړي دي او د الله او هغه د رسول

| وَلَا الۡمُؤۡمِنِيۡنَ | وَلِيۡجَةً | وَاللّٰهُ | خَبِيۡرٌۢ | بِمَا | تَعۡمَلُوۡنَ ⑯ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوبي دمومنانو نه | ادوستان | اوالله | خبردار دي | په هغه | چي تاسو ئي كوئ |

اودمؤمنانو نه سوا ئي بل څوك خالص دوستان نه دي نيولي او الله ستاسو په عملونو باندي خبردار دي

قوله تعالىٰ: أَمۡ حَسِبۡتُمۡ أَنۡ تُتۡرَكُوۡا

**دجهادپه ذريعه دمسلمانانو ازميښت**:- داناممكن دي چه ازميښت بغير دمسلمان نه هم پريږدي. رښتوني دروغژن ښكاره كول ضروري دي. د وليجه معنى رازداري او دخل وركونكي ده. نو رښتوني هغه دي چه په جهاد كښې وړاندې شي اوحصه واخلي اوپه ظاهراوباطن كښې دالله ﷻ اودهغه درسول ﷺ خير خواهي اوحمايت اوكړي.ديو قسم په بيان ئي دبل قسم په بيان اكتفاء اوكړه په دې وجه ئي ددويم قسم خلقو بيان پريخودو. داسې عبارتونه د شاعرانو په شعرونوكښې هم وي. په قرآن كريم كښې يو بل ځاۍ كښې دي چه آيا خلقو دا گمان ساتلي دي چه هغوي به صرف د هغوي په وينا كولو سره پريږدي چه مونږ ايمان راوړو اودهغوي به ازميښت هډوكولي نه شي.حالاتكه دوړاندينومؤمنانو هم مونږ ازميښت كړي. ياد ساتئي چه الله ﷻ به رښتوني او دروغژن خامخاجدا جداكوي[1]اوپه بل آيت كښې دا مضمون ﴿أَمۡ حَسِبۡتُمۡ أَنۡ تَدۡخُلُوا الۡجَنَّةَ﴾په الفاظو سره بيان فرمائيلي دي اوپه بل آيت كښې دي ﴿مَا كَانَ اللّٰهُ لِيَذَرَ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ﴾ الله ﷻ داسې نه دي چه تاسومؤمنان به هم ستاسوپه حال پريږدي اوپه امتحان كولوسره به دانه معلوموي چه خبيث څوك دي او طيب څوك دي؟ نو جهاد مشروع كولو كښې يو حكمت دا هم دي چه د كهره اوكوټه تميز اوشي. سره د دې چه الله ﷻ د هر څيز نه واقف دي كوم چه به كيږي هغه هم الله ﷻ ته معلوم دي او چه كوم نه دي شوي كله به هغه كيږي او بيا به څنگه كيږي دا هم هغه پيژني. د يوڅيز د كيدونه اول هغه ته علم حاصليږي اود هغه څيز د حالت نه هغه واقف دي خو هغه غواړي چه په دنيا باندې هم كهره او كوټه رښتوني او دروغژن ښكاره كړي. د هغه بغير بل څوك د عبادت لائق نشته نه د هغه سوا بل څوك پروردگار شته اونه د هغه قضاء قدر او اراده څوك بدلولي شي.

| اللّٰهِ | شٰهِدِيۡنَ | عَلٰٓى اَنۡفُسِهِمۡ | بِالۡكُفۡرِ | اُولٰٓئِكَ |
|---|---|---|---|---|
| مَا كَانَ | لِلۡمُشۡرِكِيۡنَ | اَنۡ يَّعۡمُرُوۡا | مَسٰجِدَ | |
| نه دي مناسب | امشركانو لره | چي اباد كړي | جوماتونه | |
| دالله | حال دا چي گواهي كونكي وي | په ځانونو خپلو باندي | د كفر | دغه مشركان چي دي |

د مشركانو دپاره جائز نه دي چه د الله ﷻ جماتونه اباد

كړي حال دا چه په خپلو ځانونو پخپله د كفر گواهي وركوي (چه مونږ كافران يو) د دې خلقو (نيك)

| حَبِطَتۡ | اَعۡمَالُهُمۡ | وَفِي النَّارِ | هُمۡ | خٰلِدُوۡنَ ⑰ | اِنَّمَا | يَعۡمُرُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ضائع شول | عملونه دهغوئ | اوپه اوركښي به | هغوئ | هميشه وسي | بيشكه | ابادوي به |

عملونه ضائع شول اودوي به په اور كښې هميشه وي بيشكه د الله ﷻ جماتونه په هغه خلق ابادوي

[1] ۲۹/العنكبوت:۲-۳.

| وَأَقَامَ | وَالْيَوْمِ الْآخِرِ | بِاللّٰهِ | اٰمَنَ | مَنْ | مَسٰجِدَ اللّٰهِ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوقائم کړي | اوپه ورځ داخرت باندې | په الله | چې ايمان راوړي | هغه څوك | جوماتونه دالله |

(او دوی د جماتونو اباد ولو لائق دي) چا چه په الله او په ورځ د اخرت ايمان راوړی وی او مونځ

| اُولٰٓئِكَ | فَعَسٰٓى | اللّٰهَ | اِلَّا | وَلَمْ يَخْشَ | وَاٰتَى الزَّكٰوةَ | الصَّلٰوةَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دغه کسان | اميد دي چې | دالله نه | مګر | اونۀ يريږي | اوورکړي زکاة | مونځ |

قائموی او زکاة ورکوی او د الله نه سوا د بل هيڅ چا نه نۀ ويريږي اميد دي چه دغه کسان

| مِنَ الْمُهْتَدِيْنَ ﴿۱۸﴾ | اَنْ يَّكُوْنُوْا |
|---|---|
| دلارموندونکونه | چې شي به هغوئ |

د هغه خلقو څنې شي چه په سمه لار روان دي

قوله تعالیٰ:: إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسٰجِدَ اللّٰهِ مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ

**دجمات جوړول ايمانداران کوی نه چه مشرکان:** يعنی الله ﷻ سره شرك کونکی دالله ﷻ دجماتونو آبادونکی جوړيدل هډو لائق نه دی. دامشرکان دی دالله ﷻ کورسره ددوی څه تعلق؟ (مَسْجِدَ) که (مسجد) هم لوستلې شی نو مراد ترې مسجد حرام دې کوم چه په مخ د زمکې جماتونونه اشرف دې. کوم چه د اول ورځې نه صرف د الله ﷻ د عبادت د پاره جوړشوې دې د کوم بنيادونه چه خليل الله ﷺ ايخودې وو. او دا خلق په حال اوقال دواړو سره مشرکان دی. ته دنصرانی نه تپوس اوکړه هغه به صفا وائی زه نصرانی يم. د يهودی نه تپوس اوکړه هغه به د خپل يهوديت اقرار کوی. که د صابی نه تپوس اوکړې نو هغه به په خپله ژبه د خپل صابی توب اعلان کوی. مشرك هم دخپل مشرك کيدو اقراری کوې. دهغوی د دې شرك په وجه دهغوی اعمال بې کاره شوی دی او هغوی د همېشه دپاره دوزخيان دی. دوی خود مسجد حرام نه نور منع کوی سره د دې که وائی چه دوی اولياء دی په اصل کښې خو اولياء الله هغه دی کوم چه متقيان دی خو اکثر خلق د علم نه خلاص اوخالی دی. ([1])

**د جماعت ابادونکی څوك دی؟:** اودجماتونو آبادول دمسلمانانو د لاسونونه کيږی. نو چه د چادلاسونونه دجماتونو آبادی کيږی د هغوی دايمان ګواهی قرآن ورکوی. په مسنداحمد کښې دی حضور ﷺ فرمائی کله چه تاسو په جمات کښې څوك تلوراتلو والا وينئی نود هغه د ايمان ګواهی ورکړئی بيا حضور ﷺ دا آيت تلاوت کړو([2]) اوپه حديث شريف کښې دی جماتونه آبادونکی دالله والا دی. او په يوبل حديث کښې دی چه الله ﷻ په دې جماتونووالا باندې نظرساتی او خپل عذاب د پوره قوم نه اخواکوی. او په حديث شريف کښې دی الله ﷻ فرمائی زما دې په خپل عزت او خپل جلال قسم وی چه زه د زمکې والا عذاب کول غواړم خوخپل کورونه آبادونکی او پخپله لارکښې محبت ساتونکو اود پيشمنی (تهجدو) په وخت کښې استغفار کونکوباندې نظراچولو سره خپل عذابونه اخواکوم([3]) په ابن عساکرکښې دی چه شيطان د انسان ليوه دې لکه څنګه چه د چيلو ليوه وی چه هغه اخواديخواخان ته چيلئی نيسی او وړی نو تاسودنفاق او اختلاف نه بچ اوسيږئی ډله او امام او جماتونه لازم نيسئی([4]) د اصحاب رسول ﷺ بيان

---

[1] ) ۸/الانفال: ۳٤.

[2] ) ترمذی کتاب الايمان باب ماجاء فی حرمة الصلاة: ۲٦۱۷، ابن ماجه: ۸۰۲، احمد: ۳/٦۸، ابن حبان: ۱۷۲۱

[3] ) شعب الايمان: ۹۰۵۱.

[4] ) احمد: ۵/۲۳۲-۲۳۳، حلية اولياء: ۲/۲۵۷.

دي چه جماتونه په دې زمکه د الله ﷻ کورونه دی. څوك چه دلته راشي نو په الله ﷻ باندې حق شته چه د هغه عزت اوکړی. ابن عباس؄ فرمائي څوك چه د مانځه اذان واوری او بیا هم جمات ته د جمعې مانځه له رانشي د هغه مونځ نه کیږي. هغه د الله ﷻ اود هغه د رسول ﷺ نافرمان دې. د الله ﷻ ارشاد دې چه د جماتونو آبادی کونکي د الله ﷻ او د قیامت منونکي دی.

**جماعت ابادونکو صفتونه:**:بیا فرمائي چه دا مونځ ګذار دی،د بدني عبادت مونځ پابند دی اود مالي عبادت زکوٰة هم ادا کونکي دی.د دوی بنیګړه د خپل خان د پاره هم وی اوبیا د عام مخلوق د پاره هم وی دهغوی زړونه د الله ﷻ نه سوا د بل چانه نه ویریږی هم دغه لار موندونکي خلق دی. مؤحد ایماندارد قرآن اوحدیث ماتحت د پنځو مونځونو پابند صرف د الله ﷻ نه ویریدونکي اودهغه نه علاوه د نور بندګی نه کونکي لار موندونکي کامیاب او مقصدته رسیدونکي دی. دا یاد ساتئي چه د ابن عباس؄ د وینا مطابق په قرآن کریم کښې چه چرته هم لفظ ﴿عَسٰی﴾ دې هلته د یقین په معنی کښې دې د امید په معنی کښې نه دې لکه چه ارشاد دې ﴿عَسٰٓى اَنْ يَّبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُوْدًا۝﴾ او مقام محمود ته رسول یعنی د حضور ﷺ شافع محشر جوړیدل یقیني څیز دې په کوم کښې چه څه شك شبه نشته. محمد ابن اسحاق ؒ فرمائي ﴿عَسٰی﴾ په کلام الله کښې د حق او یقین د پاره راځي.

| | |
|---|---|
| سِقَايَةَ الْحَآجِّ | اَجَعَلْتُمْ |
| اوبه ورکول حاجیانو ته ا | ا ایا ګنړلي دی تاسو ا |
| ایا تاسو حاجیانو ته اوبه ورکول | |

| وَعِمَارَةَ | الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ | كَمَنْ | اٰمَنَ | بِاللّٰهِ | وَالْيَوْمِ |
|---|---|---|---|---|---|
| او ابادول ا | دمسجد حرام | ابرابر پشان دهغه چا | اچي ایمان ئي راوړو | اپه الله باندې | اوپه ورځ |

اودمسجد حرام ابادول (په ثواب اونیکئ کښې) دهغه چا پشان ګرځوئ چه په الله او په ورځ د اخرت

| الْاٰخِرِ | وَجٰهَدَ | فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ | لَا يَسْتَوٗنَ | عِنْدَ اللّٰهِ ؕ | وَاللّٰهُ |
|---|---|---|---|---|---|
| داخرت باندې ا | اوجهاد ئي اوکړو ا | په لار دالله کښې ا | نهٔ دی برابر هغوئ ا | په نز دالله ا | اوالله |

ئي ایمان راوړي وی او د الله ﷻ په لار کښې ئي جهاد کړي وی دا خلق د الله په نیز برابر نه دی اوالله

| لَا يَهْدِى | الْقَوْمَ | الظّٰلِمِيْنَ۝ | اَلَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | وَهَاجَرُوْا |
|---|---|---|---|---|---|
| نیغه لارنهٔ ښائي ا | قوم ا | ظالم ته ا | هغه کسان | اچي ایمان ئي راوړو | اوهجرت ئي اوکړو ا |

ظالمانو خلقو ته د هدایت توفیق نه ورکوی هغه خلق چه ایمان ئي راوړي دې او هجرت ئي کړي دې

| وَجٰهَدُوْا | فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ | بِاَمْوَالِهِمْ | وَاَنْفُسِهِمْ ۙ | اَعْظَمُ |
|---|---|---|---|---|
| اوجهاد ئي اوکړو ا | په لار دالله کښې | اپه مالونو خپلو سره ا | اوپه نفسونو خپلو سره ا | دیرلوئ دی ا |

او دالله په لار کښې ئي په خپلو مالونو او ځانونو سره جهاد کړي وی (دغه خلق)، د الله په نیز د ثواب

| دَرَجَةً | عِنْدَ اللّٰهِ ؕ | وَاُولٰٓئِكَ | هُمُ | الْفَآئِزُوْنَ۝ | يُبَشِّرُهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| په لحاظ ددرجي سره | اپه نز دالله ا | اودا کسان | اهم دوئ | اکامیاب دی | ازیری ورکوی هغوئ ته |

په اعتبار سره ډیر لوئي دی اوهم دغه خلق (په دنیا او اخرت کښې) کامیاب دی د دوی رب دوی ته

| رَبُّهُم | بِرَحۡمَةٍ | مِّنۡهُ | وَرِضۡوَانٍ | وَّجَنّٰتٍ | لَّهُمۡ |
|---|---|---|---|---|---|
| رب دهغوئ | په رحمت سره | د طرف خپل نه | او په رضامندئ سره | او په باغونو سره | چې وي به دهغوئ دپاره |

د خپل طرف نه د رحمت او رضامندئ او د باغونو زیرې ورکوي (کله چه دوي دغه باغونو ته ورداخل شي نو) د

| فِيهَا | نَعِيمٌ | مُّقِيمٌ ۝ | خٰلِدِينَ | فِيهَآ | أَبَدًا | إِنَّ اللّٰهَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په هغې کښې | نعمتونه | همیشه | چې همیشه به اوسیږي | په هغې کښې | همیشه همیشه | بیشکه الله |

دوي دپاره به هغې کښې همیشه پاتې کیدونکې نعمتونه وي او دوي به هغې کښې همیشه همیشه وي بیشکه

| عِندَهُۥٓ | أَجۡرٌ | عَظِيمٌ ۝ |
|---|---|---|
| دهغه سره دي | اجر | لوئ |

د الله ﷻ سره (دوي دپاره) لویه بدله ده

**قوله تعالی:: أَجَعَلۡتُمۡ سِقَايَةَ ٱلۡحَآجِّ**

**دایمان نه بغیرنیک اعمال بیکاره دي:-** ابن عباس﷜ فرمائي چه دکافرانوقول وودبیت الله شریف خدمت اوبه حاجیانواوبه څکولو ثواب بهتر دې د ایمان او جهاد نه. مونږ خودا دواړه خدمتونه کوو په دې وجه زمونږ نه څوك بهتر نشته. الله ﷻ د هغوی فخر غرورحق نه تکبر او مخ اړول بیان فرمائي زما آیاتونه ستاسو په وړاندې تلاوت کولو سره تاسو د دې نه بې پروائي کولو سره مخ اړوئي او په خپل کار کښې مشغول ئي([1])نو ستاسوگمان بې ځایه دې ستاسو غرورغلط دې اوستاسو فخر نامناسب دې. هسې خو د الله ﷻ سره ایمان ساتل او د هغه په لار کښې جهاد کولو لوئ څیز دې خو ستاسو په مقابله کښې خو هغه نورهم لوئ څیز دې. څکه که ستاسو څه نیکي وي هم نو هغه د شرك په وجه نه ده صحیح نو فرمائي چه دا دواړه ډلې برابر هم نه دي دوي خو خپل خان ته آبادئي کونکي وئیل خو الله ﷻ د هغوی نوم ظالمان کیخودل د الله ﷻ د کور خدمت ئي بې کاره کړو([2])وائي چه حضرت عباس﷜ د خپل قید په زمانه کښې وئیلي وو که تاسو په اسلام او جهاد کښې وئې نو مونږ هم د الله ﷻ دکور په خدمت او حاجیانو ته آرام رسولوکښې وو.په دې باندې آیت نازل سو چه د شرك د وخت نیکي بې کاره ده([3]) صحابه کرامو ﷺ چه کله هغه ته خبرې کولې نو حضرت عباس﷜ وئیلي وو چه مونږ د مسجد حرام متولي وو، مونږ غلامان آزادول، مونږ به بیت الله شریف باندې غلاف اچولو. مونږ به حاجیانو باندې اوبه څکولې. په دې باندې دا آیت نازل شو([4])روایت دې چه دا خبرې د حضرت عباس﷜ اوحضرت علي﷜ په مینځ کښې شوې وې.

**ددریو بزرگانو تذکره::**روایت دې چه طلحه بن شیبه ﷜ عباس﷜ بن عبدالمطلب اوعلي﷜ بن ابي طالب ناست ووخپلې بزرگئي ئې بیانولې. طلحه وئیل ماسره د بیت الله کنجي ده.که زه اوغواړم نو هلته شپه کولې شم. عباس﷜ وئیل د زم زم اوبه څکونکي یم اود دې ساتونکې یم که غواړم نو په جمات کښې ټوله شپه پاتې کیدې شم. حضرت علي﷜ اوفرمائیل چه زه نه پوهیږم چه تاسو دواړه صاحبان څه وائي؟ ما د خلقونه شپږ میاشتې وړاندې قبلې طرف ته مونځ کړې دې زه مجاهد یم. نو به

[1]) ۲۳/المؤمنون: ٦٧.
[2]) الطبری: ١٤/١٧٠.
[3]) ایضا.
[4]) ایضا: ١٤/١٧٢.

دي باندې دا ايت نازل شو. عباس ﷺ خپله ويره ښکاره کړه. چه چرته زه د زم زم د اوبود عهدې نه اخوا نه کړې شم. نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل نه ته په دې خپل منصب باندې قائم اوسيږه ستا د پاره په دې کښې نيکی ده. (۱)د دې آيت په تفسير کښې يو مرفوع حديث واردشوې دې د کوم ذکرچه دلته ضروری دې. حضرت نعمان بن بشير ﷺ وائي يو سړی اووئيل چه که د اسلام نه پس زه څه عمل اونه کړم نو ماته پرواه نشته د دې نه بغيرچه زه په حاجيانو باندې اوبه اوڅکوم. دويم دغه شان د مسجدحرام د آبادنی اووئيل دريم دغه شان د الله ﷻ په لارکښې د جهاد دپاره اووئيل. حضرت عمر ﷺ هغوی اورټل او ونی فرمائيل چه د رسول الله ﷺ منبرسره آوازونه مه اوچتونې. داواقعه دجمعه د ورځې ده.دجمعه نه پس مونږ ټول حضور ﷺ ته حاضر شو اود حضور ﷺ نه مو تپوس اوکړو نوالله ﷻ دا آيت نازل کړو(۲) اوپه روايت کښې دی حضرت عمر ﷺ وعده کړې وه چه د جمعه د مانځه نه پس به زه پخپله د حضور ﷺ نه د دې خبرې باره کښې معلومات کوم.(۳)

| | | | |
|---|---|---|---|
| لَا تَتَّخِذُوْٓا | اٰمَنُوْا | يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ | |
| مه نيسئ تاسو | چې ايمان موراوړې دې | اے هغه کسانو | |

اې د ايمان خاوندانو! تاسو په خپلو پلارانواو خپلو وروڼو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الْكُفْرَ | اِنِ اسْتَحَبُّوْا | اَوْلِيَآءَ | وَاِخْوَانَكُمْ | اٰبَآءَكُمْ |
| کفر | که خوښ کړی هغوئ | دوستان | اوروڼړه خپل | پلاران خپل |

کښې هغه چا سره دوستی مکوئ چا چه د ايمان په مقابله کښې کفر خوښ کړی وی ..................

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَاُولٰٓئِكَ | مِّنْكُمْ | يَّتَوَلَّهُمْ | وَمَنْ | عَلَى الْاِيْمَانِ ؕ |
| نودغه کسان | استاسو نه | دوستی ني اوکړه دهغوئ سره | اوهغه څوك چې | په ايمان باندې |

.........اوچا چه په تاسو کښې (په داسې حالت کښې هم دوستی اوکړه)، نوهم دغه خلق

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَاَبْنَآؤُكُمْ | اٰبَآؤُكُمْ | اِنْ كَانَ | قُلْ | الظّٰلِمُوْنَ ﴿۲۳﴾ | هُمُ |
| اوځامن ستاسو | پلاران ستاسو | که چرې وی | ورته اووايه | ظالمان دی | هم هغوئ |

ظالمان دی .......... ته (دوی ته) اووايه! که ستاسو پلاران او ځامن ..........

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَاَمْوَالُ | وَعَشِيْرَتُكُمْ | وَاَزْوَاجُكُمْ | وَاِخْوَانُكُمْ |
| اوهغه مالونه | اوخپلوان ستاسو | اوښځې ستاسو | اوروڼړه ستاسو |

او وروڼړه ..........اوبيبيانې ..........اوخپل خپلوان ..........اوکوم مالونه چه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمَسٰكِنُ | كَسَادَهَا | تَخْشَوْنَ | وَتِجَارَةٌ | اقْتَرَفْتُمُوْهَا |
| اوهغه کورونه | دنه چليدودهغې نه | چې تاسويريږئ | او هغه تجارت | چې ګټلې دی تاسوهغه |

تاسو ګټلې دی ..........او هغه سوداګری د کوم د نه چليدونه چه تاسو ويريږئ اوهغه (خپل) کورونه

---

(۱) تفسير القرآن لعبدالرزاق: ۲۴۳/۱، الطبری: ۱۷۱/۱۴.
(۲) الطبری: ۱۶۹/۱۴، احمد: ۲۶۹/۴.
(۳) صحيح مسلم كتاب الامارة باب فضل الشهادة فى سبيل الله تعالى: ۱۸۷۹، احمد: ۲۶۹/۴

تَرۡضَوۡنَهَآ اَحَبَّ اِلَيۡكُمۡ مِّنَ اللّٰهِ وَرَسُوۡلِهٖ وَجِهَادٍ

چې خوښوئ تاسو هغه | زیات غوره وی | تاسو ته | دالله نه | اود رسول دهغه نه | اودجهاد نه

چه تاسو ئې خوښوئ (دا ټول څیزونه) تاسو ته د الله او د هغه د رسول اود الله په لار کښې د جهاد کولو

فِيۡ سَبِيۡلِهٖ فَتَرَبَّصُوۡا حَتّٰى يَاۡتِىَ اللّٰهُ بِاَمۡرِهٖ ؕ وَاللّٰهُ لَا يَهۡدِى

په لاره دهغه کښې | نوانتظارکوئ | اتردې پورې | چې راوړی الله | فیصله خپله | اوالله | لار نه ښائی

نه زیات خوښ وی نو (په داسې صورت کښې) تاسو دالله د (عذاب د) فیصلې انتظارکوئ او الله ظالمانو

الۡقَوۡمَ الۡفٰسِقِيۡنَ ۝

قوم | فاسقانوته |

خلقو ته د هدایت توفیق نه ورکوی

قوله تعالی:: لَا تَتَّخِذُوۡۤا اٰبَآءَكُمۡ وَاِخۡوَانَكُمۡ

**دکافرانود دوستئ اومینې نه د الله ﷻ د منع کولو حکم:-** الله ﷻ د کافرانو سره د دوستئ پریخودلو حکم کوی.د هغوی د دوستانې نه منع کول کوی که هغه موړپلار وی که رورخور وی پدې شرط چه هغه کفر په اسلام باندې خوښوی.او په بل آیت کښې دی ﴿لَا تَجِدُ قَوۡمًا يُّؤۡمِنُوۡنَ بِاللّٰهِ﴾ په الله ﷻ اودقیامت په ورځ باندې ایمان راوړونکی به ته هیڅ کله هم د الله ﷻ اودهغه د رسول ﷺ د دښمنانو سره دوستی کونکې اونه وینې. که هغه د دوی پلاران وی که خامن یارور یا نور رشته دار هم وی دغه خلق دی چه د هغوی په زړونو کښې ایمان لیکلې دې.اوپه خپل خاص روح سره ئې د هغوی تائید کړې دې. دوی به د نهرونو والا جنت ته رسوی. په بیهقی کښې دی چه د حضرت ابوعبیده بن جراح رضی الله عنه پلار د بدر په ورځ د هغه په وړاندې دخپلو بتانو تعریف شروع کړو.که هغه دې هرڅومره منع کول غوښتل خو هغه هم وړاندې کیدو په پلاراوخامنوکښې جنګ شروع شو هغه خپل پلار قتل کړو.په دې باندې آیت﴿لَا تَجِدُ﴾الخ. نازل شو[1] بیاداسې کونکې ویروی اوفرمائی که چرې دا رشته دار اوخپل حاصل شوې مال دتجارت د کمې ویره او خوښ شوی مکانونه که تاته د الله ﷻ اود هغه د رسول ﷺ نه اود جهاد نه هم زیات مرغوب وی نوتاله د الله ﷻ دعذابونودپاره تیاریدل پکار دی.داسې بدکارو ته الله ﷻ هم لار نه ښائی. رسول الله ﷺ صحابه کرامو رضی الله عنهم سره روان وو دحضرت عمر رضی الله عنه لاس دحضور ﷺ په لاس کښې وو.حضرت عمر رضی الله عنه وئیل یارسول الله ﷺ! تاسو ماته د هرڅیز نه ډیر ګران ئې بغیرزما د ځان نه. رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه په هغه ذات مې دې قسم وی دچا په قبضه کښې چه زما نفس دې په تاسوکښې به څوك هم مؤمن نه وی ترکومې چه هغه ما دخپل ځان.نه هم عزیز اونه ګڼړی.حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل په الله ﷻ قسم اوس ستاسو محبت ماته د خپل ځان نه هم زیات دې. حضور ﷺ اوفرمائیل اې عمر(رضی الله عنه)! (اوس ته مؤمن شوې)[2] په صحیح حدیث کښې د حضور ﷺ فرمان ثابت دې د هغه قسم دچا په لاس کښې چه زما روح دې په تاسو کښې به څوك ایماندار نه وی ترکوم وخته پورې چه زه هغه ته د موړپلار نه د اولاد نه اود دنیا دټولوخلقو نه زیات ګران نه شم[3] په مسنداحمد او ابوداؤد کښې دی چه حضور ﷺ فرمائی کله چه

---

[1]) بیهقی:۹/۲۷وقال: هذامنقطع.

[2]) صحیح بخاری کتاب الایمان والنذور باب کیف کانت یمین النبی ﷺ:۶۶۳۲، احمد:۴/۲۳۳. صحیح بخاری.

[3])صحیح بخاری کتاب الایمان باب حب الرسول ﷺ من الایمان:۱۵، صحیح مسلم: ۴۴،مسندابی عوانه:۱/۴۱، احمد : ۳/۱۷۷، السنن الکبری للنسائی:۱۱۷۴۴،ابن ماجه:۶۷، دارمی:۲/۳۹۷،ابن حبان:۱۷۹.

تاسو د بیع عینه اخستل او خرخول کوئ اود غواګانو او غواګانو لکۍ اونیسئ او جهاد پریږدئ الله ﷻ به په تاسو ذلت واچوی او هغه به نه لرې کیږی وی ترڅو چه تاسو خپل دین ته واپس نه شئ.[1]

| | | | |
|---|---|---|---|
| لَقَدْ | نَصَرَكُمُ اللّٰهُ | فِيْ مَوَاطِنَ | كَثِيْرَةٍ |
| ا په تحقیق سر | امداد کړی دی تاسو سره الله | په ځایونو | ډیرو کښې |

بیشکه الله ﷻ تاسو سره په ډیرو موقعو اوخاص کر د حنین په

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَّيَوْمَ | حُنَيْنٍ | اِذْ اَعْجَبَتْكُمْ | كَثْرَتُكُمْ | فَلَمْ |
| او په ورځ | د حنین کښی | کله چی په تعجب کښی واچولی تاسو | زیاتوالی ستاسو | انو نه کړو |

په موقع مدد کړی وو. کله چه ستاسو ډیروالی تاسو په تعجب کښی اوغورځولئ (چه نن خو مونږ ډیریو)

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| تُغْنِ | عَنْكُمْ | شَيْئًا | وَّضَاقَتْ | عَلَيْكُمُ | الْاَرْضُ | بِمَا |
| دفع دی ډیر والی | ستاسو نه | هیڅ څیز | او تنګه شوه | په تاسو باندی | زمکه | سره |

نو ستاسو ډیروالی تاسو ته هیڅ فائده درنکړه (بلکه) زمکه سره د دې چه ډیره فراخه ده په تاسو باندې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| رَحُبَتْ | ثُمَّ | وَلَّيْتُمْ | مُّدْبِرِيْنَ | ثُمَّ | اَنْزَلَ اللّٰهُ | سَكِيْنَتَهٗ | عَلٰى رَسُوْلِهٖ |
| د ارتوالی | بیا | او ګرزیدئ تاسو | شا کونکی | بیا | نازل کړو الله | ارام | خپل په رسول خپل باندې |

تنګه شوه او بیا (د دې ډیروالی باجود) تاسو شا کونکی شوئ (خو) بیا الله ﷻ په خپل رسول او مؤمنانو خپل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَعَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ | وَاَنْزَلَ | جُنُوْدًا | لَّمْ تَرَوْهَا | وَعَذَّبَ | |
| او په مومنانو باندې | او نازل ئې کړو | داسې لښکرې | چی تاسو نه لیدلې | هغه او عذاب ئې ورکړو | |

ارام نازل کړل او (د فرشتو داسې) لښکرې ئې راولیږلې چه تاسو نه لیدلې او (ستاسو په لاسونو ئې)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | وَذٰلِكَ جَزَآءُ | الْكٰفِرِيْنَ | ثُمَّ |
| هغه کسانو ته | چی دحق نه ئې انکار کړی وو | او هم دا بدله ده | دحق نه دانکار کونکو | بیا |

کافرانو ته عذاب ورکړو (او دا عذاب ورکول څه ظلم نه دی بلکه) دا د کافرانو (د کفر) بدله ده بیا

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يَتُوْبُ اللّٰهُ | مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ | عَلٰى مَنْ | يَّشَآءُ | وَاللّٰهُ | غَفُوْرٌ | |
| توفیق د توبې ورکوی الله | روستو د دې نه | هغه چاته | چی خوښه ئې شی | او الله | ښخښونکې | |

(د دې غزوې نه پس) الله ﷻ دهغه چا توبه قبوله کړه چه خوښ ئې شو او الله ﷻ ښښونکې دې

| |
|---|
| رَّحِيْمٌ |
| رحم کونکې دې |
| مهربان دې ای مؤمنانو |

**قوله تعالیٰ: لَقَدْ نَصَرَكُمُ اللّٰهُ**

دجنګ حنین واقعه اود الله ﷻ نصرت. مجاهد رحمه الله فرمائی د براءة دا رومبې آیت دې چه په کښې الله

---

[1]) ابوداؤد کتاب البیوع باب فی النهی عن العینة: ۳۴٦۲.

ﷻ خپل ډیر لوئ احسان په مؤمنانویاندې ذکر فرمائي چه هغه د خپل نبیﷺ د ملګرو پخپله امداد اوکړو هغوی ئې په دښمنانویاندې غالب کړل او په یو ځائ نه بلکه په هرځائ کښې د هغه امداد شامل حال وو. په دې وجه فتحې او کامیابئ د هغوی ملګرتیا پرینخوده. دا صرف د الله ﷻ تائیدوو نه چه د مال اسبابواووسلو زیاتې اونه دشمیر زیاتې.یاد ګړه د حنین په ورځ تاسودخپل شمیر په زیاتی باندې فخر اوناز کړې وو نو څه حال مو شوې وو شا[؟] اوتختیدئ صرف د شمیریوڅوکسان د الله ﷻ پیغمبرﷺ سره پاتې شو هم په هغه وخت د الله ﷻ امداد نازل شو هغه په زړونوکښې آرام واچولو دا ددې دپاره چه تاسو ته معلومه شی چه امداد هم د هغه رب د طرف نه دې. هم د هغه په امداد ووړ ووړ ډلو لوئې لوئې ډلوله مخ واړولو. د الله ﷻ امداد د صبر کونکو سره وی. داواقعه به مونږ په تفصیل سره ډیر زر بیانوو ان شاء الله.

**بهترین څلور خلق:**:دمسندپه حدیث کښې دی بهترین ملګری څلوردی اوبهترین ووړکې لښکرد څلوروسوو دې.او بهترین لوئ لښکر د څلورو زرو دې اود دولسو زرو شمیر خود خپل کمې په وجه کله هم مغلوب کیدې نه شی[۱]داحدیث په ابوداؤد او ترمذی کښې هم دې. امام ترمذی ؒ دا حسن غریب ښائی.داروایت بغیر د یو راوی نه ټولو مرسلا بیان کړې دې. په ابن ماجه او بیهقی کښې هم دا روایت هم دا شان مروی دې. والله اعلم.

**دغزوهٔ حنین تاریخ او تفصیل:**:په ۸ هجری کښې د مکې د فتحې نه پس د شوال په میاشت کښې د حنین جنګ اوشو.کله چه حضورﷺ د مکې د فتحې نه فارغ شو او ابتدائی کارونه ئې پوره کړل او عام مکی کسان مسلمانان شواوهغوی حضورﷺ آزاد کړې هم وو نوحضورﷺ ته خبرملاؤ شوچه قبیله هوازن راجمع شوی دی او د نبی کریمﷺ سره په جنګ کولو باندې تیار دی. د هغوی سردار مالك بن عوف نصری دې. د ثقیف ټوله قبیله هغوی سره ده. دغه شان بنوجشم بنوسعد بن بکر هم دی اود بنو بلال هم څه خلق دی.اوڅه خلق د بنوعمرو بن عامراود عون بن عامر هم دی. دا ټول سره دخپل ښځو بچو او مال میدان ته راوتلی ولاړ دی.تردې چه هغوی خپلې چیلئ اواوښان هم ځان سره ساتلی دی.نو نبی کریمﷺ د خپل لښکر سره کوم چه د مهاجرینو او انصارو وغیره وو د هغوی د مقابلې د پاره روان شو. تقریبا دوه زره نوی مکی مسلمانان هم وو.دمکې او طائف په مینځ کښې وادئی کښې دواړه لښکرې یوځائ شوې د دې ځائ نوم حنین وو. سحر وختی په تیاره کښې چه قبیله هوازن په مورچوکښې پټ ناست وو هغوی په ناخبرئی کښې په مسلمانانو باندې ناڅاپی حمله اوکړه. ډیر زیات غشی ورولو سره وراندې لاړل او توری چلول ئې شروع کړه.تردې چه په مسلمانانوکښې په دې موقع ګډوډوالې خور شو اودوی مخ واړولو اواوتختیدل. خو رسول اللهﷺ د هغوی طرف ته وړاندې شو. حضورﷺ دغه وخت په سپین خچر باندې سوررو اوحضرت عباسؓ د حضورﷺ دخاروی ښی طرفته پیزوان نیولې وواو حضرت ابوسفیان بن حارث بن عبدالمطلب ګس طرف ته پیزوان نیولې وو اود خاروی تیزی دوی رامنع کوله. نبی کریمﷺ په اوچت آواز سره پخپله اورسیدلو او مسلمانانوته ئې د واپسئ حکم فرمائیلو او آواز ئې کولو چه د الله ﷻ بندیګانو! چرته لاړئ زما طرف ته راشئ زه د الله ﷻ رښتوی رسول یم زه نبیءیم دروغژن نه یم، زه د عبدالمطلب د اولاد نه یم.دغه وخت کښې نبی کریمﷺ سره تقریبا اتیا یا سل کسان صحابه کرام پاتې وو.حضرت ابوبکرؓ،حضرت عمرؓ، حضرت عباسؓ، حضرت علیؓ، حضرت فضل بن عباسؓ، حضرت ابوسفیان بن حارثؓ، حضرت ایمن بن ام ایمن ؓ، حضرت اسامه بن زید ؓ وغیره حضورﷺ سره ملګری وو. بیا حضورﷺ خپل تره حضرت عباسؓ ته چه ډیر اوچت آواز ئې وو

---

[۱] ابوداؤد کتاب الجهاد باب ل مایستحب من الجیوش والرفقاء والسرایا:۲۶۱۱، ترمذی:۱۵۵۵، احمد:۲۹٤/۱، ابن خزیمه:۲۶۱۱، ابن حبان:۱۶۶۳، حاکم:٤٤۳/۱.

حکم اوکړو چه د ونې لاندې بیعت کونکو صحابه کرامو ته اواز ورکړه چه هغوی اونه تختي. نو هغه آواز اوکړو چه اې دکیکردونې لاندې بیعت کونکواې دسورة بقرې حاملینو! نو دا آوازدهغوی غوږونوته اورسیدو اودهرطرف نه نی ﴿لبیك لبیك﴾ ونیل شروع کړل اود آواز طرف ته نی تیپونه وهل او هم په هغه وخت راغله اود حضور ﷺ خواکې چاپیره اودریدل. تر دې چه که د چا اوښ نه تلو نوهغوی د اوښ نه راؤدانگل اوخپله زغره نی واچوله او پیدل د سرکارنبوت ﷺ په خدمت کښې حاضر شو. کله چه ځه ډله د حضور ﷺ نه چاپیره راجمع شوه نو حضور ﷺ د الله ﷻ نه دعاغوښتل شروع کړه. یاالله! کومه وعده چه ستاماسره ده هغه پوره کړه. بیاحضور ﷺ دزمکې نه یوموټې خاوره اوچته کړه اود کافرانو طرف ته نی اوغورزوله.دې سره د هغوی خلې او سترگې ډکې شوې اوهغوی د جنگ کولو قابل پاتې نه شو اخوامسلمانانو په هغوی باندې حمله اوکړه د هغوی پښې راوچتې شوې او اوتختیدل. مسلمانان هغوی پسې شو اودمسلمانانو باقی فوځ حضور ﷺ له راورسیدواو په دومره ساعت کښې هغوی کافران قیدکړل او د حضور ﷺ مخې ته نی راډهیرې کړل.

مسنداحمدکښې دی چه حضرت ابوعبدالرحمن فهری ﷺ چه د هغه نوم یزیدبن اسید دې یا یزیدبن انیس دې او کرز ورته هم وئیلې شی فرمانی چه زه په دې جنگ کښې نبی کریم ﷺ سره ووم، ورځ سخته گرمه وه غرمه کښې مونږ د ونو سورو لاندې وو. د نمر اوړیدونه پس ما خپله وسله اولگوله او په خپل اس باندې سور شوم اود رسول الله ﷺ خیمې ته لاړم د سلام نه پس ما عرض اوکړو حضور ﷺ! هواگانې یخې شوی دی حضور ﷺ اوفرمانیل صحیح ده آواز ئې اوکړو بلال! نو هغه وخت بلال ﷺ دیوې ونې لاندې وو.دحضور ﷺ آواز اوریدوسره لکه دمرغنی والوتو﴿لبیك وسعدیك وانافداوك﴾ ونیلو سره حاضر شو. حضور ﷺ اوفرمانیل زما سورلی تیاره کړه هم هغه وخت هغه زین راو ویستو د کوم دواړه پړی چه د کهجورو د رسئی وو په کوم کښې چه هیڅ د فخر وغیره څه څیز نه وو. چه کله تیار شو نو حضور ﷺ سور شو او مونږ صفونه جوړکړل مابنام او شپه دغه شان تیره شوه بیا دواړه لښکرې یو ځای شوې نومسلمانان اوتختیدل لکه چه قرآن پاك ذکرفرمانیلی دې.حضور ﷺ آوازورکړوچه اې د الله ﷻ بندیگانو! زه د الله ﷻ بنده او رسول یم. اې مهاجرو!زه د الله ﷻ بنده او رسول یم. بیا د خپل اس نه راکوز شو او یو موټې خاوره نی اوچته کړه بیا دې فرمانیلو سره چه د دوی مخونه دې وران شی د کافرانوطرف ته نی اوغورزوله. هم دې سره الله ﷻ هغوی ته ماتې ورکړه.د دې مشرکانو بیان دې چه په مونږ کښې یو هم داسې نه وو د چا په خله او سترگو کښې چه دا خاوره نه وه تللې. هغه وخت داسې معلومیده لکه چه د زمکې او آسمان په مینځ کښې یوه اوسپنه په نوې کاسه او په تالی کښې کړنگولې شی(۱) په یوروایت کښې دی چه تختیدلی مسلمانان کله دسلو پورې دحضور ﷺ خواته واپس راورسیدل نو حضور ﷺ هم هغه وخت د حملې حکم اوکړو. اول خو چغه د انصارو وه خو بیا په خزرج باندې پاتې شوه دا قبیله د جنگ په وخت کښې ډیره صبرکونکې وه. نبی کریم ﷺ د خپلې سورلئی نه د میدان جنگ نظاره اوکړه او ونې فرمانیل اوس به جنگ په ښه گرمئی سره وی. په دې کښې دی چه الله ﷻ کوم یوکافرغوښتلو هغه قتل کړې شو، څوك نی چه غوښتلو هغه قید کړې شو اود هغوی مال او اولاد نبی کریم ﷺ کوفې ته راوړلو.(۲)حضرت براء بن عازب ﷺ ته چا اووئیل چه اې ابوعماره! آیا تاسو خلق د حنین په ورځ د رسول الله ﷺ نه تختیدلې ونې؟ هغه اوفرمانیل خود رسول الله ﷺ قدم روستوشوې نه وو. خبره دا وه چه د قبیله هوازن خلق د غشو ویشتلو ماهران وو. د الله ﷻ په فضل سره مونږ هغوی ته په

---

۱) احمد:۵/۲۸۶،مسندالطیالسی:۱۳۷۱،دارمی:۲/۲۱۹، ابوداؤد کتاب الادب باب الرجل ینادی الرجل فیقول لبیك:۵۲۳۳.

۲) صحیح مسلم کتاب الجها باب غزوة حنین:۱۷۷۵، احمد:۱/۲۰۷، مصنف عبدالرزاق:۹۷۴۱، حاکم:۳/۳۲۷

اوله حمله کنبې ماتې ورکړه خو چه کله خلق د غنیمت په مال راغونډېدو نو هغوی موقعه بیاموندو اوښه په ښنبه سره ئې دغشو باران اوکړو نودلته ویره خوره شوه. سبحان الله د رسول اللهﷺ پوره بهادرئی او د زړورتیا موقعه وه. لښکر اوتختیدو او هغه وخت نبیﷺ په تیزه سورلئی نه ووچه په تیخته کنبې په کار راغلې وې بلکه په خچرباندې سوررو اود مشرکانوطرف ته وړاندې کیدو او خپل ځان ئې نه پټولو بلکه خپل نوم په ئې په خپله ژبه مبارکه بار بار اخستلو چه نه پیژندګلو خلق ئې هم اوپیژنی. (۱) خیال اوکړئی چه څنګه په واحد ذات باندې توکل وو او څومره کامل یقین ئې وو د الله ﷻ په امداد. پوهیدلو چه الله ﷻ به درسالت امر پوره کوی اود هغوی دین به د دنیا په ټولودینونوباندې غالب کوی. فصلوات الله وسلامه علیه ابدًا ابدًا. اوس الله ﷻ په نبی کریمﷺ اومسلمانانو باندې سکنیت نازلوی اود خپلو فرښتولښکرالیګی چه هغوی څوك هم نه وینی. دیومشرك بیان دې چه دحنین په ورځ مونږ مسلمانانو سره جنګیدلو. چه دوې چیلئی پنې اولښې دومره ساعت هم مونږ هغوی خپلې مخې ته په اودریدو نه دی پریخی. ډیر زر اوتختیدل او مونږ هغوی پسې شو تردې چه مونږ یو صاحب په سپین خچر باندې سور اولیدو. مونږکتل چه د ښائسته نورانی سپینومخونو خلق د هغوی نه چاپیره وو. د هغوی د ژبې نه اووتل چه ستاسو مخونه دې وران شی واپس شئی. دا وینا وه چه مونږ ماتې اوخوړه اوتردې چه مسلمانان زمونږ په اوږو باندې سواره شو. (۲) حضرت ابن مسعودؓ فرمائی چه زه هم په دې لښکر کنبې ووم، نبی کریمﷺ سره صرف اتیا کسان مهاجر او انصار پاتې شوی وو مونږ لا شا کړې نه وه چه په مونږ باندې الله ﷻ اطمینان او سکون نازل فرمائیلې وو. نبیکریمﷺ په خپل سپین خچرباندې سور د دښمنانوطرف ته وړاندې کیدو. څاروی تیندك اوخوړلو او حضورﷺ د زین د پاسه ښکته طرف ته تیټ شو. ما آواز ورکړو حضورﷺ اوچت شئی الله ﷻ دې تاسو هم اوچت اوساتی. حضورﷺ اوفرمائیل چه یوموټې خو د خاورو نه ډکه کړه. ما ډك کړو. حضورﷺ د کافرانوطرف ته اوغورزولې نودې سره د هغوی سترګې ډکې شوې. بیائې اوفرمائیل مهاجرو او انصارو! چرته ئې؟ ما اووئیل هم دلته دی نو هغویﷺ اوفرمائیل چه دوی ته آواز ورکړه. زما آواز ورکول وو چه هغوی توری راویستې په ټوپو راغله اوس د مشرکانو یوه خبره هم اونه چلیده او هغوی اوتختیدل.(۳)

***دحنین په موقعه دشیبه بن عثمان عجیبه واقعه:***:د بیهقی په یوروایت کنبې دی چه شیبه بن عثمانؓ وائی چه دحنین په ورځ مارسول اللهﷺ په دې حالت کنبې اولیدو چه لښکرماتې خوړلې تختی او حضورﷺ یوازې پاتې شو نو ماته دبدر په ورځ د خپل پلار او تره قتل کیدل رایاد شو چه هغه د حضرت علی ؓ اوحضرت حمزهؓ د لاسه قتل شو. ما په زړه کنبې اووئیل چه ددې نه به د بدلې اخستو ښه موقعه چرته ملاویږی؟ راشه پیغمبرﷺ قتل کړه. په دې اراده زه دحضورﷺ ښی طرف ته وړاندې شوم خوهلته می عباسؓ بن عبدالمطلب اولیدو. د سپینې چاندئی غوندې زغره ئې اغوستې تکړه ولاړ دې.ما وئیل چه تره دې د خپل وراره به پوره حمایت کوی، ورځه د ګس طرف نه خپل کار اوکړه. هلته مې چه اوکتل نو ابوسفیان بن حارث بن عبدالمطلب ولاړدې ماوئیل چه د ده هم دتره د خوئ رور دې. د خپل رور به خامخا حمایت کوی بیا زه شاته راغلم او هغوی ته ورنیزدې شوم صرف دومره خبره باقی پاتې وه چه توره راوچته کړم او واراوکړم نو ما اوکتل چه یوه د أور سپینه کوره د بجلئی د پرق په شان زما طرف ته راوچته شوه اوپه ما راپریوتل غواړی. ما خپلې سترګې بندکړې او شاته روستو شوم. هم دې وخت کنبې حضورﷺ زما طرف ته التفات اوکړو او وئی فرمائیل شیبه! ماته راشه. الله ﷻ دې د ده

---

(۱) صحیح بخاری کتاب الجهاد باب من قاد دابة غیره فی الحرب:۲۸٦٤، صحیح مسلم:۱۷۷٦، ترمذی:۱٦۸۸.
(۲) الطبری:۱۷٦/۱٤.
(۳) احمد:٤٥٤/۱ وسنده حسن، کشف الاستار:۱۸۲۹، حاکم:۱۱۷/۲، دلائل النبوة للبیهقی:۱٤۲/٥، مجمع الزوائد:۱۸۰/٦

شيطان لري كړي نو ماسترګې كولاؤكړې چه ګله مې د رسول الله ﷺ طرف ته اوكتل نو والله هغوی ﷺ ماته دخپلو غوږونواوسترګونه زيات محبوب وو.نبی كريم ﷺ اوفرمائيل شيبه زه كافرانوسره اوجنګيږه [1] شيبه ﷺ فرمائي چه په دغه جنګ كښې زه هم د نبي كريم ﷺ د ملګرو سره ووم خو زه د اسلام په وجه يا د اسلام د معرفت په وجه نه ووم وتلې بلكه ما وئيل چه دا څنګه كيدې شي چه هوازن په قريشو باندې غالب راشي؟زه حضور ﷺ سره نيزدې ولاړ ووم چه ماذ ابلق رنګ اسونه اوليدل. وئيل مې يارسول الله ﷺ زه خو د ابلق رنګ اسونه وينم. حضور ﷺ اوفرمائيل شيبه هغه خو د كافرانونه علاوه بل چاته نه ښكاري. بيا حضور ﷺ زما په سينه لاس اووهلو دعائي اوكړه الله ﷻ شيبه ته هدايت اوكړه بيا په دويم ځل او په دريم ځل داسې اوكړه اوهم دغه ئې اوفرمائيل. والله دحضور ﷺ دلاس اخواكيدو سره ماته د ټولې دنيا نه زيات محبت د نبي كريم ﷺ سره په خپل زړه كښې اوموندلو.[2]

**په غزوهٔ حنين كښې غيبي نصرت:** جبيربن مطعم ﷺ فرمائي چه زه په دې جنګ كښې حضور ﷺ سره ووم. ما اوكتل چه څه څيز د آسمان نه راكوزيږي د ميږو په شان هغوی ميدان راګيركړو او هم هغه وخت د كافرانو قدمونه سست شو والله زمونږ هيڅ شك نه وو چه دا آسماني امداد وو[3] يزيد بن عامر سوائي دخپل كفر د زماني نه په جنګ حنين كښې كافرانو سره وو روستو دې مسلمان شوې وو. د هغه نه به چه ګله تپوس كولې شو چه په دغه موقعه ستاسو د زړونو د رعب او ويرې څه حال وو؟ نو هغه به په ركيبي كښې كانړي واچول او كړنګولوسره به ئې دا وئيل بس هم دغه شان به زمونږ د زړونونه راتلل [4] او بې شان اينه به مو رچيدله او زړه به مو ډوبيدلو. په صحيح مسلم كښې دي چه رسول الله ﷺ فرمائي ماته په رعب سره امداد راكړې شوې دې.ماته جامع كلمې راكړې شوی دي[5] الغرض كافرانوته الله ﷻ دا سزا وركړه اودا د هغوی د كفر بدله وه. باقي په هوازن باندې الله ﷻ مهرباني اوكړه او هغوی ته ئې توبه ورنصيب كړه اومسلمانان شو او د مخدوم په خدمت كښې حاضر شو. دغه وخت هغوی فتح حاصله كړې وه او مكې ته نيزدې جعرانه مقام ته رسيدلې وو.دجنګ شل ورځې تيرې شوې وې په دې وجه حضور ﷺ اوفرمائيل چه اوس تاسو په دوو څيزونوكښې يوخوښ كړئ يا قيديان او يا مال؟ هغوی قيديان واپس اخستل خوښ كړل. د هغه قيديانو وړو لويو سړو او ښځو بالغ او نابالغ شمير شپږ زره وو.حضور ﷺ هغه ټول هغوی ته واپس كړل. دهغوی مال دغنيمت په توګه په مسلمانانوكښې تقسيم كړې شو او نوی مسلمانان چه د مكې آزاد كړې شوی وو هغوی ته هم نبی كريم ﷺ د دې مال نه وركړو. دې د پاره چه د هغوی زړونه اسلام ته پوره مائل شي. په دوی كښې يو يو ته سل سل اوښان وركړې شو. مالك بن عوف النصری ته هم نبی كريم ﷺ سل اوښان وركړه اوهغه ئې د خپل قوم سردار جوړكړو لكه څنګه چه هغه وو. هم د دې په تعريف كښې هغه په خپله مشهوره قصيده كښې وئيلې دي چه ما خود محمد ﷺ په شان نه څوك اوليدل اونه مې څوك واوريدل. په وركړه كښې او بخښش كښې قصورمعاف كولوكښې په دنياكښې دحضور ﷺ ثاني نشته. نبی كريم ﷺ صبادقيامت په ورځ كيدونكې ټول امور ښائي، صرف هم دغه يوازې نه بلكه شجاعت او بهادرئي كښې هم حضور ﷺ بې مثال وو په ميدان جنګ د غصه شوی ازمری په شان پيغمبر ﷺ به د دښمنانوطرف ته وراندې كيدو.

---

[1] دلائل النبوة للبيهقي:١٤٥/٥.
[2] دلائل النبوة للبيهقي:١٤٥/٥-١٤٦.
[3] دلائل النبوة للابيهقي:١٤٦/٥.
[4] طبراني الكبير:٢٢/٢٣٧-٢٣٨، مجمع الزوائد:١٨٣/٦.
[5] صحيح بخاري كتاب الجهاد باب قول النبي ﷺ(نصرت بالرعب مسيرة شهر):٢٨٧٧،صحيح مسلم:٥٢٣،مصنف عبدالرزاق:٢٠٠٢٣.

يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّمَا الْمُشْرِكُوْنَ نَجَسٌ

ا اے هغه کسانو | چې ایمان مو راوړی دی | بیشکه | مشرکان | پلیت دي

اې مؤمنانو بیشکه مشرکان (اګرچه په ظاهره ډیر پاک وي روحاني لحاظ سره) پلیت دي

فَلَا يَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ بَعْدَ عَامِهِمْ هٰذَا ۚ وَاِنْ

پس نه دې نژدې کیږي دوئ | مسجد حرام ته | روستو | د کال ددوئ نه | چې دادي | او که

نو د دې کال نه پس دې دوی مسجد حرام ته نه نژدې کیږي (باقي د مشرکانو په بندیز که ستاسو تجارت خرابیږي

خِفْتُمْ عَيْلَةً فَسَوْفَ يُغْنِيْكُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖٓ اِنْ شَآءَ ؕ

یره کوئ تاسو | د غریبئ نه | نو زر به | مالدار کړي تاسو الله | په فضل خپل سره | که اوغواړي هغه

او که تاسو د غریبئ نه ویریږئ نو که الله ﷻ اوغواړي تاسو به په خپل فضل سره (د بل طرفه) مالدار کړي

اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ۝ قَاتِلُوا الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ

بیشکه الله | په هر څه پوهه دي | د حکمت خاوند دي | جنګیږئ | د هغه کسانو سره | چې ایمان نه راوړي

بیشکه الله ﷻ پوهیږي او صاحب حکمت دي د هغه خلقو سره جنګیږئ چې په الله ﷻ او د اخرت

بِاللّٰهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَلَا يُحَرِّمُوْنَ مَا حَرَّمَ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ

په الله باندې | او نه | په ورځ د اخرت باندې | او حرام نه ګڼي | هغه چې احرام کړي دي الله | او رسول د هغه

په ورځ یقین نه ساتي | او هغه څیزونه نه حراموي کم چه الله ﷻ او د هغه رسول حرام کړي دي

وَلَا يَدِيْنُوْنَ دِيْنَ الْحَقِّ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ

او نه جوړوي دین | دین حق لره | د هغه کسانو نه | چې ورکړې شوې دي ورته | کتاب

او حق دین نه قبلوي (چه دین اسلام دې په دې بدو صفتونو موصوف کسان) د هغه خلقو څنې دي چه

حَتّٰى يُعْطُوا الْجِزْيَةَ عَنْ يَّدٍ وَّهُمْ صٰغِرُوْنَ ۝

تردې پورې | چې ورکړي هغوئ | جزیه | په خپل لاس | حال دا چې هغوئ ذلیله وي |

اهل کتاب دي | تردې ورسره جنګیږئ چه په ذلت او رسوائي سره جذیه ورکړي |

**قوله تعالى:: اِنَّمَا الْمُشْرِكُوْنَ نَجَسٌ فَلَا يَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ**

**دحرم په حدودو کښې دمشرکانو داخلیدل منع دي:** الله ﷻ احکم الحاکمین د خپل پاك دین او پاکیزګئ او طهارت والا مسلمانانو بندیګانو ته حکم فرمائی چه هغوی دې د دین په رو سره پلیت مشرکان بیت الله شریف ته نه پریږدی. دا آیت په نهمه هجری کښې نازل شوې او هم په دې کال حضور رسول مقبول ﷺ حضرت علی رضی الله عنه د حضرت ابوبکر رضی الله عنه سره لیګلې وو او حکم ئې ورکړو چه په ګنړه کښې اعلان اوکړئ چه د دې کال نه پس یو مشرك هم حج له رانشي او هیڅ یو کس دې بربنډ د بیت الله طواف نه کوی([1])دا شرعی حکم الله ﷻ چه قادر او قیوم دې داسې پوره کړو چه نه هلته مشرکانو ته داخلیدل

[1] ترمذی کتاب الحج باب ماجاء فی کراهیة الطواف عریانا: ۸۷۱ وهو صحیح، دارمی: ۱۹۱۹، مسند ابی یعلی: ۴۵۲، بیهقی: ۲۰۷/۹، مسندحمیدی: ۴۸.

نصیب شوانونه د دې نه پس په برېنډه چا د بیت الله شریف طواف اوکړو. حضرت جابر بن عبدالله ﷛ غلام او ذمي سړي مستثنی ګڼړي.(۱)د مسنداحمد په حدیث کښې رسول الله ﷺ فرمائي چه زمونږ په دې جمات کښې د دې کال نه پس بغير د معاهدې والا اوستاسو د غلامانونه علاوه څوك كافر رانه شي(۲) خود دې مرفوع حديث ډير صحيح سند والا موقوف روايت دې.

**د عمر بن عبدالعزيز فرمان:**: خليفة المسلمين حضرت عمر بن عبدالعزيز ﷫ فرمان جاري كړې وو چه يهوديان او نصرانيان د مسلمانانو جماتونوته مه پريږدئ. په دې منع كولو هغوى د دې آيت ماتحتې كښې وو. حضرت عطاء ﷫ فرمائي چه ټول حرم په دې حكم كښې په شان د مسجدحرام دې. دا آيت د مشركانو په نجس كيدو هم دليل دې. په صحيح حديث كښې دى چه مؤمن نجس نه وى (۳) باقي پاتې شوه دا خبره چه د مشركانو ذات او بدن هم نجس دې كه نه. نو د جمهورو قول دا دې چه نجس نه دى خكه چه الله ﷻ د اهل كتابو حلاله حلاله كړې ده. بعضې اهل ظاهر دا وائى چه د مشركانو بدن هم ناپاك دې. حضرت حسن ﷫ فرمائي چه څوك دوى سره مصافحه اوكړى هغه دې لاس اووينځي. په دې حكم باندې بعضې خلقو اووئيل چه بيا خو به زمونږ تجارت تپ شي او زمونږ بازارونه به وران شي او دغه شان ډيرې فائدې به لاړې شي نو د دې په جواب كښې الله ﷻ غني اوحميد فرمائي. تاسو د دې خبرې نه مه ويريږئ الله ﷻ به تاسو ته ډيرو صورتونونه دركړي. تاسو ته به د اهل كتابونه جزيه دركړي او تاسو به غنيان كړي. ستاسو مصلحتونه ستاسو نه ډيربنه ستاسو رب پيژني.د هغه حكم اود هغې ممانعت د څه نه څه حكمت سره وى. دا تجارت د دومره فائدې نه دې څومره به چه تاسو ته د جزيه نه دركړي. دا اهل كتاب كوم چه د الله تعالى د هغه د رسول ﷺ اود ورځې د قيامت منكر دى چه د يو نبى په صحيح معنى كښې پوره تابعدار نه دى بلكه خپلو خواهشاتو اود خپلو مشرانو په تقليد كښې پراته دى كه د دوى په خپل نبى اكرم ﷺ باندې اوخپل شريعت باندې پوره ايمان وو نو هغوى به زمونږ په دې نبى هم ايمان راوړلې وو.دده بشارت خوهريونبى وركولوده د تابعدارنې حكم خو هر نبىوركړې دې خوسره د دې هغوى د اشرف الرسل ﷺ نه انكارى دى. نو د وړاندې انبياؤ د شرع سره هم په أصل كښې د دوى څه مطلب نشته. په دې وجه د دې انبياؤ زبانى اقراردوى دپاره بې فائدې دې خكه چه دوى دسيدالانبياء افضل الرسل خاتم النبين اكمل المرسلين ﷺ نه كفر كوى. په دې وجه دوى سره هم جهاد اوكړه. دوى سره د جهاد كولو دا رومبې ايت دې. تر دې وخته پورې خواوشا مشركانوسره جنګ شوې وو اوپه دوى كښې اكثر د توحيد د جنډې لاندې راغلي وو په جزيرة العرب كښې اسلام خائ كړې وو.اوس ديهوديانو او نصاراؤ خبر اخستل اوهغوى ته نيغه لار خودلو حكم اوشو. په نهمه هجرى كښې داحكم نازل شو اوحضور ﷺ د روميانوسره د جهاد تيار شروع كړو.خلق ئى د خپلې ارادې نه خبركړه د مدينې ګيرچاپيره عرب ئى خبركړل او تقريباً د ديرشو زرو لښكر سره د روم طرف ته روان شو سواً دمنافقانونه دلته څوك باقي پاتې نه شو او څه بعضې نور خلق. موسم ګرم وو د ميوو وخت وو روم سره د جهاد د پاره د شام د ملك ډير لرې او سخت سفر وو. تبوك پورې ئى تشريف يوړو نو هلته ئى تقريباً شل ورځې قيام اوكړو. بيا د الله ﷻ نه استخاره اوكړه او واپس شول د خلقو د تنګئى حالت او د خلقو د كمزورئى په وجه. لكه څنګه چه ډير زر د دې واقعه ان شاء الله بيانيږى.

---

۱) تفسير القرآن لعبدالرزاق:۲/۲۶۹وسنده صحيح.
۲) احمد:۳/۳۹۲، مجمع الزوائد:۴/۱۰.
۳) صحيح بخارى كتاب الغسل باب عرق الجنب وان المسلم لاينجس:۲۸۳، صحيح مسلم:۲۷۱، ابوداؤد:۲۳۱، ترمذى:۱۲۱، ابن ابى شيبه: ۱/۱۷۳،احمد:۳/۲۳۵، ابوعوانه: ۱/۲۷۵،ابن حبان: ۱۲۵۹.

**داهل کتابو نه په جزیه اخستلو کښې د فقهاء کرامو اقوال** ۰ ۰ ۰ آ - نه استدلال کولو سره بعضو فرمائیلي چه جزیه داهل کتابونه اودهغوی په شان خلقونه اخستې شی لکه مجوسیان.دهجر د مجوسیانونه نبی کریمﷺ جزیه اخستې وه([1]) د امام شافعی رحمه الله هم دغه مذهب دې اومشهور مذهب د امام احمد رحمه الله هم دغه دې. امام ابوحنیفه رحمه الله وائی د ټولو عجمیانونه واخلئی که هغه اهل کتاب وی اوکه مشرکان وی. او په عربوکښې صرف د اهل کتابونه دې واخستې شی. امام مالك رحمه الله فرمائی چه جزیه اخستل د ټولوکافرانو نه جائز ده که هغه کتابی وی که مجوسی یا بت پرست وغیره وی. د دې مذاهبو د دلائلو وغیره د بیان ځائ دا نه دې. والله اعلم.

## د اهل کتابو نه د جزیه اخستلو حکم

**مسلک حنفی:-** امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه د ټولو اهل کتابو نه به جزیه اخستې شی که عربی وی او که عجمی او مشرکانو کښې به د عجمیانو نه اخستې شی برابره ده که مجوسی وی او که بت پرست وی البته د مرتدینو نه به نشی اخستې([2])

**اهل ذمه کافرانوته په مسلمانانوترجیح ورکول حرام دی ::**نوفرمائی چه ترکومې هغوی ذلت او خوارئ سره په خپلو لاسونوجزیه درنه کړی هغوی مه پریږدئی. او اهل ذمه باندې مسلمانانوته عزت او توقیر ورکول او هغوی ته ترقی ورکول جائزنه دی. په صحیح مسلم کښې دی رسول اللهﷺ فرمائی یهودیانو اونصاری سره دسلام شروع مه کوئې اوچه کله دهغوی نه څوك په لارکښې ملاؤ شی نوهغه دتنګئ طرفته مجبوره کړئی([3])هم دغه وجه وه چه حضرت عمر فاروقؓ هغوی سره هم داسې شرطونه کړی وو.

**د عبدالرحمان بن غنم د معاهدې لیک تفصیل سره::** عبدالرحمن بن غنم اشعری ؓ فرمائی ما په خپل لاس باندې معاهده لیکلې وه اوحضرت عمر فاروقؓ ته مې ورکړې وه. چه د اهل شام د فلانکی فلانکی ښارخلقو سره دامعاهده ده. امیر المؤمنین حضرت عمرؓ چه کله په مونږ باندې د خپل لښکر سره راشی نومونږ د خپل ځان او مال او اهل وعیال د پاره امن غواړو نو مونږ په دې شرطونوسره هغه امن حاصلوو چه مونږ به په خپلو دې ښارونوکښې اود هغې سره خواکې به څوك مندر یا ګرجاګهر او یا خانقاه وغیره نوې نه جوړوی. اونه به د یوداسې خرابئ کونکی مکان اصلاح کوی کوم چه وران شوې وی هغه به مرمت کوی نه. که په دې کښې یو مسلمان مسافر ورکوزیدل غواړی نو منع کولې به نه شی که هغه ورځ وی که شپه مونږ به د هغې دروازې او لارې د مسافرانود پاره کولاؤ ساتو او چه کوم مسلمان راشی مونږ به د هغه دریو ورځو پورې میلمستیا کوو. مونږ به په خپلو دې مکانونوکښې یاد اوسیدو په مکانونوکښې چرته څوك جاسوس نه پټوو.مسلمانانو سره به څه دهوکه اوفریب نه کوو.خپل اولاد ته به قرآن نه ښایو، د شرك خرګندونه به نه کوو. نه به څوك د شرك طرف ته راغواړو. که په مونږ کښې څوك اسلام قبلول اوغواړی نو مونږ به هغه هیڅ کله نه منع کوو. د مسلمانانو به عزت او توقیر کوو. که هغوی زمونږ په ځائ کښې کیناستل غواړی نو مونږ به پاسواوهغوی ته به ځائ ورکوو. مونږ به مسلمانانو سره په یوڅیز کښې هم برابری نه کوو. نه په جامو کښې نه په څپلوکښې او نه په مانګ (په سرکښې لار) ویتسلوکښې. مونږ به د هغوی ژبه نه وایو.دهغوی کنیت به نه ایږدو. د زین والا په اسونوبه سورلی نه کوو اونه به نې زوړندوو اونه به نې خپل ځان سره ساتو. د ګتمو ګوتو باندې به عربی نقش نه کوو.شراب به نه خرڅوو. د خپلو سرونو وړاندینی ویښته به پریکوو اوچه کوم ځائ هم بو

---

[1]) صحیح بخاری کتاب الجزیة باب الجزیة والموادعة مع اهل الذمة والحرب: ۳۱۵۷، ابوداوُد:۳۰٤۳، مسندابی یعلی:۸٦۱.

[2]) (تفسیر مظهری (۱۲۲۱۴).

[3])صحیح مسلم کتاب السلام باب النهی من ابتداء اهل الکتاب بالسلام وکیف یرد علیهم:۲۱٦۷، ابوداوُد:۵۲۰۵، ترمذی :۱٦۰۲.

زنار به خامخا په غاړه اچوو د صلیب نښې به په خپلو ګرجو باندې نه ښکاره کوو. خپل مذهبی کتابونه به دمسلمانانو په لارو کوڅوکښې نه ښکاره کوو. په ګرجوکښې به جرسونه په اوچت آواز سره نه کړنګوو. اونه به د مسلمانانو په موجودګئی کښې د خپل مذهب کتابونه په اوچت آواز سره وایو. نه به مذهبی شعرونه په لاروکښې وایو اونه به په خپلو مړو باندې په اوچت آواز سره وینا ګانې کوو. اونه به هغوی سره دمسلمانانو په لارو باندې اور وړو. دمسلمانانو په حصه کښې راتلونکی غلامان به مونږ نه اخلو. دمسلمانانو خیرخواهي به خامخا کوو. دهغوی کورونوکښې به نه ګورو. کله چه دا معاهده د فاروق اعظم ﷺ په وړاندې پیش کړې شوه نو هغوی په دې کښې یو شرط نور هم زیات کړو چه مونږ به یو مسلمان هم هیڅ کله نه وژنو. دا ټول شرطونه قبول او منظور دی اوزمونږ د ټولو هم مذهب خلقو ته هم په دې شرطونو باندې امن ملاؤ دې که په دې کښې مونږ د یو شرط هم خلاف ورزی اوکړه نو زمونږ نه به ستاسو ذمه جدا شي اوچه څه تاسوخپلو دښمنانوسره کوئ ددې ټولو به مونږ هم مستحق یو.

| وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ | عُزَيْرُ | ابْنُ اللّٰهِ | وَقَالَتِ | النَّصٰرَى | الْمَسِيْحُ | ابْنُ اللّٰهِ ط |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او وائي يهوديان | چې عزير | خوئي دالله دي | او وائي | عيسايان | چې مسيح | خوئي دالله دي |

اويهوديان وائي چه عزير ﷺ دالله ځوئي دې | اونصرانيان وائي چه مسيح (عيسى) د الله ځوئي دې | دا

| ذٰلِكَ قَوْلُهُمْ | بِاَفْوَاهِهِمْ ج | يُضَاهِـُٔوْنَ | قَوْلَ الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا |
|---|---|---|---|---|
| داخبرې ددوئ دي | په خلوددوئ باندې | مشابه کوي دوئ | خبرې دهغه کسانوسره | چې کفرئې کړې وو |

(خبرې)صرف ددوي د خلوخبرې دي|دوي دهغه کافرو خلقوپشان خبرې کوي کوم چه د دوي نه وړاندې

| مِنْ قَبْلُ ط | قٰتَلَهُمُ اللّٰهُ ج | اَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ ۝ | اِتَّخَذُوْٓا |
|---|---|---|---|
| دمخکښې نه | هلاك دې کړي دوئ لره الله | چې دكوم ځائي نه دهوکه کيږي دوئ | جوړکړي دي دوئ |

تيرشوي دي |الله دې دوي هلاک کړي څنګه (سره د پوهې نه) دوي د حق نه اړولي شي|حقيقت دادې چه

| اَحْبَارَهُمْ | وَرُهْبَانَهُمْ | اَرْبَابًا | مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ | وَالْمَسِيْحَ | ابْنَ | مَرْيَمَ ج |
|---|---|---|---|---|---|---|
| عالمان خپل | اوعابدان خپل | خدايان | ما سوا دالله نه | اومسيح | اخوئي | ادمريم |

دوي خپل عالمان، عابدان اومسيح بن مريم دالله نه سوا (په تحريم اوتحليل کښې)معبودان جوړ کړي دي

| وَمَآ اُمِرُوْٓا | اِلَّا | لِيَعْبُدُوْٓا | اِلٰهًا | وَّاحِدًا ج |
|---|---|---|---|---|
| او حال داچې نه دې شوي حکم دوئ ته | مګردې | اچې بندګی اوکړي دوئ | ادمعبود يو | نشته |

حالانکه دوي ته صرف د دې حکم شوي وو چه صرف د يو معبود (چه الله دې د هغه )عبادت کوي

| لَآ اِلٰهَ | اِلَّا | هُوَ ط | سُبْحٰنَهٗ | عَمَّا | يُشْرِكُوْنَ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| لائق دعبادت | مګر | هم هغه دې | پاکي ده هغه لره | دهغې نه | چې دوئ ئې شريکوي |

چه دهغه (الله) نه سوا بل څوک د عبادت لائق نشته | دوي چه ورسره کوم شرک کوي د هغې نه پاک دې

**قوله تعالى:: وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ عُزَيْرُ ابْنُ اللّٰهِ**

**مشرکانو انبياء اودرويشان دالله ﷻ شريکان جوړ کړل:-** پدې آياتونوکښې هم الله ﷻ رب العزت مؤمنانو ته د مشرکانوکافرانو يهوديانواونصرانيانو سره د جهاد کولو ترغيب ورکوی. فرمائي ګوره هغوی د

الله ﷻ په شان کښې څنګه ګستاخي کوي.

**د عزيز عليه السلام د ښځې قصه:**يهوديان عزير ؈ ته د الله ﷻ ځوئ وائي الله ﷻ د دې نه پاك او بزرګ او اوچت دې چه د هغه اولاد وي. د دې خلقو نه چه د حضرت عزير ؈ باره کښې کوم وهم شوې د هغه قصه دا ده. علامه سيدي ليکلي دی چه کله عمالقه په بنی اسرائيلو باندې غالب راغله د هغوی علماء ئې قتل کړل،مشران ئې قيد کړل. نوعزير ؈ داوچتيدلونه اود علماؤ دقتل نه اودبنی اسرائيلود تباهئي نه سخت خفه شواو په ژړا شروع شو نو عزيز عليه السلام د بنی اسرائيلو دعلم او په ژړا ژړا ترې د سترګو بنړې پريوتلې. يو ورځ دغه شان په ژړا کښې په يوميدان تيريدلو ونی کتل نويوه ښځه يوقبرسره ناسته ده ژړاکوی اووينا کوی چه افسوس اوس به زما د خوراك څه کيږی زما د کپړو به څه کيږی؟ عزير ؈ هغې سره اودريدو او ورته ئې اووئيل چه د دې سړی نه وړاندې تاباندې چا خوړله او چا درته اغوستنه کوله. هغې ونيل الله تعالى. نو هغه اوفرمائيل چه الله ﷻ خو اوس هم ژوندې اوباقي دې په هغه خو به چرې هم مرګ نه راځی. دې اوريدو سره هغې ونيل اې عزيرا ته هم بيا دا او ښايه چه د بنی اسرائيلو نه اول علماؤ ته علم چا خودلو؟ عزير ؈ اوفرمائيل الله تعالى. هغې ونيل چه تاسو ؈ دا ژړا واويلا ولې کوئې نو هغه ؈ پوهه شو چه دا د الله ﷻ باری عزوجل د طرف نه تنبيه ده بيا ئې هغوی ؈ ته اووئيل چه فلانکی نهر ته لاړ شه اوغسل اوکړه دوه رکعته مونځ اوکړه هلته به تاته يو سړې ملاوشی چه هغه په تا څه خوری هغه اوخوره. عزير ؈ هلته تشريف يوړو غسل ئې اوکړو مونځ ئې ادا کړو څه ګوری چه يوسړې دې وائی خُله کولاؤکړه عزير ؈ خُله کولاؤکړه نو هغه درې خل يوځيز د هغه په خُله کښې واچولو. هم هغه وخت الله ﷻ د هغه سينه کولاؤ کړه نو هغه د تورات د ټولونه لوئ عالم جوړشو. بنی اسرائيلو ته لاړو هغوی ته ئې اوفرمائيل ما تاسو له تورات راوړلې دې هغوی اووئيل تاسو ؈ مونږ ته د ټولوپه نيزرښتونې ئې.

عزير ؈ خپلې ګوتې پورې قلم اوتړلو او هم په هغه ګوته ئې په يوسا تورات اوليکلو.اخواخلق د جنګ نه واپس شو په هغوی کښې علماء هم واپس راغلل نو هغوی ته د عزير ؈ د دې خبرې علم اوشو دوی لاړو او په غرونو او غارونوکښې چه د تورات کومې نسخې پټې کړې وې راويستلې راتې وړې دې نسخوسره ئې دحضرت عزير ؈ دليکلې شوې نسخې مقابله اوکړه نو بالکل صحيح ئې اوموندله په دې باندې د بعضې جاهلانو په زړه کښې شيطان دا وسوسه واچوله چه عزير ؈ د الله ﷻ ځوئ دې حضرت مسيح ؈ ته به نصرانيانو د الله ﷻ ځوئ ونيل. د هغوی واقعه خو ښکاره ده نو د دې دواړو ډلو غلطه وينا قرآن پاك بيانوی چه دا د هغوی صرف زبانی خبرې دی کومې چه بې دليله دی. څنګه چه د دوی نه وړاندې خلق په کفر اوضلالت کښې وو دوی هم د هغوی مريدان او مقلدين دی. الله ﷻ دې په دوی لعنت اوکړی د حق نه څنګه واوړيدل.

**د عدی ؓ د ايمان قصه:**په مسنداحمد ترمذی شريف او ابن جريرکښې دی چه کله عدی بن حاتم ته د رسول الله ﷺ دين اورسيدلو نو د شام طرف ته اوتختيدلو. هم په جاهليت کښې دې نصرانی شوې وو دلته د هغه خور اود هغه ډله قيد کړې شوه. بيا حضور ﷺ د احسان په توګه د هغه خور آزاده کړه او پيسې ئې هم ورکړې. دا نيغه خپل رور له لاړه اود اسلام رغبت ئې ورکړو او پوهه ئې کړو چه ته رسول کريم افضل الصلوة والتسليم له لاړ شه. دې مدينې منورې ته راغلو. دې د قوم سردار وو د هغه د پلار سخاوت په ټوله دنياکښې مشهوررو. خلقو رسول الله ﷺ له د هغه خبر ورکړو نو رسول الله ﷺ پخپله هغه له راغلو. دغه وخت د عدی په مرئی کښې د چاندئې صليب زوړند وو.دحضور ﷺ د ژبې مبارکې نه د دې آيت ﴿اتخذوا﴾ تلاوت شروع وو.نو هغه اووئيل چه يهودو او نصاراؤ د خپلو علماؤ او درويشانو عبادت نه دې کړې. حضور ﷺ اوفرمائيل چه واوره د هغوی حرام کړې شوی ته حرام اوګڼړل اوکوم چه د



هغوی درويشان او علماء حلال اوښائي هغه دي حلال اوګڼل نو هم دا د هغوی عبادت وو. بيا حضورﷺ اوفرمائيل عدي! آيا ته د دي نه منکر ئې چه الله ﷻ د ټولونه لوئي دي. آيا ستا په خيال کښې د الله ﷻ نه څوك لوئي شته آيا ته د دي خبرې نه انکاری ئې چه معبود برحق د الله ﷻ نه سوا بل څوك نشته؟ آيا ستا په نيز د الله ﷻ نه علاوه بل څوك هم د عبادت لائق شته؟ بيا حضورﷺ هغه ته د اسلام دعوت ورکړو نو هغه قبول کړو اود الله ﷻ د توحيد اود حضورﷺ د رسالت ګواهي ئې ورکړه. د حضورﷺ مخ مبارك د خوشحالئې نه اوبرقيدلو اووئې فرمائيل په يهودو د الله ﷻ غضب نازل شوی دي او نصرانيان ګمراه شوی دي. (۱)

وَاتَّخَذُوْٓا اَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ مطلب: :حضرت حذيفه بن يمانؓ او حضرت عبدالله بن عباسؓ وغيره نه هم د دي آيت تفسير دغه شان مروی دي. چه د دي نه مراد د حلالو او حرامو مسائلو کښې د علماؤ او ائمه د خبرو صرف تقليد دي(۲) سدي رحمه الله فرمائي چه هغوی د بزرګانو منل شروع کړه. اود الله ﷻ کتاب ئې يو طرف ته کيخودو. پدې وجه الله ﷻ چه کريم ذات دي ارشاد فرمائي چه هغوی ته خو حکم صرف دا وو چه د الله ﷻ نه سوا د بل چا عبادت مه کوئې. هم هغه چه کوم څيز حرام کړی نو هغه حرام دی او چه هغه کوم څيز حلال کړی هغه حلال دي.هم دهغه فرمان شريعت دي.هم دهغه کارونه په ځائ راوړلولائق دي اودهغه ذات د عبادت مستحق دي هغه د شريك نه او شرك نه پاك دي. د هغه په شان د هغه شريك د هغه نظير د هغه امدادی اود هغه ضد هيڅ څوك نشته. هغه د اولاد نه پاك دي اونه د هغه نه بغير بل څوك معبود او پروردګار شته.

| يُرِيْدُوْنَ | اَنْ يُّطْفِـُٔوْا | نُوْرَ اللّٰهِ | بِاَفْوَاهِهِمْ | وَيَاْبَى اللّٰهُ | اِلَّآ اَنْ | يُّتِمَّ | نُوْرَهٗ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| غواړي دا خلق | چې مړه کړي | رڼا د الله | په خلو خپل | اونه منی الله | مګر دا | اچې پوره کړي | هغه رڼا خپله |
| دوی غواړي چه د الله د دين رڼا په خپلو خلو سره مړه کړي اوالله دخپلې رڼا پوره کولو نه سوا بله خبره نه مني | | | | | | | |

| وَلَوْ | كَرِهَ | الْكٰفِرُوْنَ ﴿۳۲﴾ | هُوَ | الَّذِيْٓ | اَرْسَلَ | رَسُوْلَهٗ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اګرکه | انه خوښوي | کافران | الله | هغه ذات دي | اچې رالیږلي ئې دي | ارسول خپل |
| اګرچه دا خبره کافران بده ګڼري اوالله هغه ذات دي چه خپل پيغمبر ئې په هدايت اوحق دين سره | | | | | | |

| بِالْهُدٰى | وَدِيْنِ الْحَقِّ | لِيُظْهِرَهٗ | عَلَى الدِّيْنِ | كُلِّهٖ ۙ | وَلَوْ |
|---|---|---|---|---|---|
| په هدايت سره | او په حق دين سره | دپاره ددي چې غالب کړي | اپه دينونو | ټولو باندې | اګرکه |
| رالیږلي دي اچه دادين (د دنيا په ټولو) دينونو غالب کړي اګرچه (دا غالب کول) کافران خلق بد ګڼري | | | | | |

| كَرِهَ | الْمُشْرِكُوْنَ ﴿۳۳﴾ |
|---|---|
| نه خوښوي | مشرکان |

قوله تعالى: : يُرِيْدُوْنَ اَنْ يُّطْفِـُٔوْا نُوْرَ اللّٰهِ

**په پوکود حق شمع نه شي مړه کيدي**: فرمائي چه د هر قسم کافرانو اراده او خوښه هم دا ده چه د الله ﷻ نورمړکړی اودالله ﷻ هدايت اوحق دين ختم کړی نوخيال اوکړه که يوسړې دخپلې خلې په پوکی

---

(۱) دا روايت په مختلفوالفاظوسره په دي کتابونوکښې موجود دي احمد: ۲۷۸/ ،ترمذی کتاب تفسير القرآن باب ومن سورة التوبة: ۳۰۹۵

(۲) الطبری: ۲۱۲/۱٤.

باندې د نمر او سپوږمۍ رڼا مره کول غواړي نو څه داسې کېدې شي؟دغه شان که دا خلق د الله ﷻ نور مړ کول غوښتلو کښې امکانی کوشش اوکړي نوآخر به عاجز پاتې شي.ضروری خبره ده اود الله ﷻ فیصله ده چه د دین حق تعلیم د رسول اللهﷺ نوم به اوچت وی. تاسونی ختمول غواړئ الله ﷻ نی اوچتول غواړي. ښکاره خبره ده چه د الله ﷻ غوښتنه به ستاسو په غوښتنه غالب وی. که تاسو هر څومره خفه نې خود هدایت آفتاب به د آسمان په مینځ کښې رسیږي.

**د کفرلغوی معنی:**:په عربی لغت کښې کافر وانی د یوڅیز پټونکی ته،هم په دې اعتبارشپې ته هم کافر وانی، ځکه چه هغه هم ټول څیزونه پټوی. زمیندار ته هم کافر وائی ځکه چه هغه تخم په زمکه کښې پټوی. لکه چه فرمانی ﴿يُرِيدُونَ أَن يُطْفِئُوا نُورَ اللَّهِ﴾هم دغه الله ﷻ خپل رسول اللهﷺته هدایت او دین حق سره خپل پیغمبرﷺ جورکړې رالیګلې دې. نود حضورﷺ رښتونې خبرې او صحیح ایمان او نفع ورکونکې علم دا هدایت دې او ښکلې اعمال چه په دنیا اوآخرت کښې نفع ورکړی دا حق دین دې. دا به د دنیا په ټولومذاهبوباندې خوروی.

**اسلام به هرکور ته ننوزي:**:حضوراکرم ﷺ فرمانی زما دپاره د زمکې مشرق اومغرب راغونډکړې شوې دې. زما د امت ملك به دې ټولوځایونوته رسی([1])فرمانی چه ستاسو په لاسونوبه مشرق او مغرب فتح کیږي.اوهغوئ عمال او ګورنران دوزخیان دی بغیر د هغوی نه چه متقیان پرهیزګاران او امانتدار وی. ([2]) فرمانی چه دا دین به ټولو هغه ځایونوته رسی کوم ځائ ته چه شپه ورځ رسی یوکچه یا پوخ کور به داسې پاتې نه شی چرته چه به الله ﷻ عزوجل اسلام اونه رسوی. عزیزان به عزیز کړی او ذلیلان به ذلیل کړی. اسلام ته عزت ورکونکوته به عزت ملاویږي اوکفر ته به ذلت نصیب کیږي. حضرت تمیم داری ﷺ فرمانی چه ما خودا خبره پخپله په خپل کور کښې اولیدله چه مسلمان شو نو خیر اوبرکت او عزت شرافت ملاؤشو او چه کافر پاتې شو نو هغه ته ذلت، نفرت، لعنت نصیب شو. ښکته والې او سپکوالې اولیدلو او په کمینه پن سره نی جزیه ورکول منظور کړل.([3])

رسول اللهﷺ فرمانی چه په مخ د زمکه به یوداسې پوخ یاکچه کور باقی پاتې نه شی په کوم کښې چه به الله ﷻ د اسلام کلمه داخله نه کړی. هغه د عزت والا ته عزت ورکړی اوذلیل به ذلیل کړی.چاته چه عزت ورکول غواړي هغوی ته به اسلام نصیب کړی او څوك چه ذلیل کول غواړي نو هغوی به دا نه منی خود هغې په ماتحتئ کښې به هغوی له راتلل وی([4]) حضرت عدیﷺ فرمانی چه ماله رسول مقبول ﷺ تشریف راوړو ماته نی اوفرمائیل اسلام قبوله کړه چه سلامتی ملاوشی. ما ونیل چه زه خو یو دین منم حضورﷺ اوفرمائیل چه ستا د دین نه تانه زیات علم ماته دې. ماوئیل رښتیا. حضورﷺ اوفرمائیل بالکل رښتیا. آیا ته د رکوسیه نه نه یئ؟آیا ته د خپل قوم نه ټیکس نه وصولوئې؟ ما ونیل چه او دا خو رښتیا دی. حضور ﷺ اوفرمائیل چه ستا په دین کښې دا ستا د پاره حلال نه دی نودې اوریدو سره خو زه ټیټ شوم. نبی کریمﷺ اوفرمائیل ماته ښه پته ده چه تا د اسلام نه کوم څیز منع کوی. واوره تاته صرف د دې یوې خبرې نه منع ده چه مسلمان بالکل ضعیف کمزورې او ناتوان دې ټولو عربو دوی راګیرکړی دی دوی ترقی نشی کولې.خو واوره ته حیره پیژنې؟ماونیل چه کتلې خومی نه دې اوریدلې می ضرور دی. حضورﷺ اوفرمائیل چه د هغه ذات قسم د چا په قبضه کښې چه زما روح دې چه الله ﷻ به د دین دا کار خامخا پوره کوی. تردې پورې چه یو په ښاروی سور به د حیره نه روان شی اوبغیر د چا

---

[1] صحیح مسلم:کتاب الفتن باب هلاك هذه الامة بعضهم ببعض: ۱۸۸۹،ابوداؤد:٤٢٥٢،احمد:٥/٢٧٨، ابن حبان: ۷۲۳۸.

[2] احمد:٥/٣٦٦-٣٦٧، مجمع الزوائد:٥/٢٣٢.

[3] احمد/٣ ١٠ وسنده صحیح، مجمع الزوائد:٦/١٤،ابن حبان:١٦٣١.

[4] احمد:٦/٤وسنده صحیح، مجمع الزوائد:٦/١٤.

امان نه به مکې معظمې ته راورسي اود بیت الله طواف به کوي. والله تاسو به د کسری خزانې فتح کړئ، ما وئیل د کسری بن هرمز. نبي کریمﷺ اوفرمائیل اودکسری بن هرمز. په تاسو کښې به د مال دومره زیاتوالې اوشي چه څوك اخستونکې به نه ملاوېږي.داحدیث بیانولوخت کښې حضرت عدیؓ اوفرمائیل د رسول اللهﷺ فرمان پوره شوګوره نن د حیره نه سواره روان دی او بې ویرې خطرې بغیرد چا د پناه نه بیت الله ته رسي او طواف کوي. د صادق اومصدوقﷺ دویمه پیشن ګوئي هم پوره شوه. د کسری خزانې فتح شوې پخپله په هغه فوج کښې ووم کوم چه د ایران خنبتې سره خنبته اوجنګوله اود کسری پټې خزانې په خپله قبضه کښې واخستې. والله زما پوره یقین دې چه د صادق اومصدوقﷺ دریمه پیشن ګوئي به هم قطعًا پوره کیږي.[1] حضورﷺ فرمائي چه دشپې ورځې دوربه ختم نه وي تر کومې چه بیا د لات او عزی عبادت اونه کړې شي. حضرت عائشه ؓ فرمائي چه ما عرض اوکړو چې انې رسول الله دا ایت ﴿هُوَالَّذِیٓ اَرۡسَلَ﴾ د نازلیدلونه پس زما خیال خو تر ننه پورې دا پاتې شو چه دا پوره خبره ده. حضورﷺ اوفرمائیل چه او پوره شوه اومکمله به وي ترکومې چه الله ﷻ ته منظوره وي. بیا به الله ﷻ رب العالمین یوه پاکه هوا راولیګي چه هر هغه سړې به وفات کړي د چا په زړه کښې چه د اوري د دانې هومره ایمان وي. بیا به هغه خلق باقي پاتې شي په کوموکښې چه به څه خیر اوخوبي نه وي. نو هغوی به بیا د خپلو پلارانو اونیکونو دین طرف ته واپس راوګرځي.[2]

| |
|---|
| یَآ اَیُّهَا الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡٓا اِنَّ کَثِیۡرًا مِّنَ |
| ا اے هغه کسانو ا چې ایمان موراوړې دې ا بیشکه ا ډیر ا د |
| ا اې مؤمنانو(په دې خبره ځان پوهه کړئ چه) د یهودیانو په عالمانو او عابدانو کښې زیات خلق |
| الۡاَحۡبَارِ وَالرُّهۡبَانِ لَیَاۡکُلُوۡنَ اَمۡوَالَ النَّاسِ بِالۡبَاطِلِ وَیَصُدُّوۡنَ |
| عالمانو نه ا اوعابدانو نه ا خامخاخوري هغوئ ا مالونه د خلقو ا په باطلې طریقې سره ا اومنع کوي خلق |
| دخلقو مالونه په ناجائزه طریقه باندې خوري ا او(په کردار اوګفتار سره ، خلق د الله ﷻ د لارې (دین) |
| عَنۡ سَبِیۡلِ اللّٰهِ ؕ وَالَّذِیۡنَ یَکۡنِزُوۡنَ الذَّهَبَ وَالۡفِضَّةَ وَلَا یُنۡفِقُوۡنَهَا فِیۡ |
| دلارې دالله نه ا اوهغه کسان ا چې خزانه کوي ا سره زر ا اوسپین زر ا اونه خرچ کوي هغه ا په |
| نه منع کوي ا اوکوم خلق چه سره او سپین زر جمع کوي ا او د الله ﷻ په لار کښې ئې نه خرچ کوي |
| سَبِیۡلِ اللّٰهِ ۙ فَبَشِّرۡهُمۡ بِعَذَابٍ اَلِیۡمٍ ۙ یَّوۡمَ یُحۡمٰی |
| لاردالله کښې ا نوزیرې ورکړه هغوئ ته ا په عذاب ا دردناك سره ا په هغه ورځ ا چه ګرمولې به شي |
| نودوی ته د درد ناك عذاب زیرې ورکړه ا (دا عذاب به ورته په ، هغه ورځ (ورکولې شي) چه په هغې به |
| عَلَیۡهَا فِیۡ نَارِ جَهَنَّمَ فَتُکۡوٰی بِهَا جِبَاهُهُمۡ وَجُنُوۡبُهُمۡ |
| په هغې سره ا په اور ا ددوزخ کښې ا نوداغلې کیږي به ا په هغې سره ا تندي دهغوئ ا اوډډې دهغوئ |
| د جهنم اور ګرمولی شي ا اوبیا به په هغې سره د دوی تندو ، اړخونو او شاګانو ته داغونه ورکولې شي |

[1] احمد: ۲۵۷،۳۷۸/٤، دلائل النبوة: ۳٤۲/۵ وسنده صحیح مجمع الزوائد: ۱٤/٦.
[2] صحیح مسلم کتاب الفتن باب لا تقوم الساعة حق تعبددوس ذالخلصة: ۲۹۰۷، مسندابيعلى: ٤٥٦٥.

| وَظُهُورُهُمْ | هٰذَا | مَا | كَنَزْتُمْ | لِأَنفُسِكُمْ | فَذُوقُوا | مَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوشاګانی دهغوی | دا | هغه ده | چې خزانه کړې وه تاسو | دپاره دنفسونو خپلو | نو اوڅکئ تاسو | هغه چې |
| اودوی ته به وئیلې شي چه) دا هغه مال دې کوم چه تاسو د خپلو ځانونو دپاره خزانه کړي وو | | | | | نو (اوس د) هغه | |

| كُنتُمْ | تَكْنِزُونَ۝ |
|---|---|
| وئ تاسو | چې خزانه کولو به مو |
| مال (سزا) اوڅکئ چه تاسو به خزانه کولو | |

قوله تعالى:: إِنَّ كَثِيرًا مِّنَ الْأَحْبَارِ وَالرُّهْبَانِ

**د یهودیانو احبار اونصرانیانو رهبان:-** دیهودیانو عالمانوته احبار اود نصرانیانو عابدانوته رهبان وائي. آیت ﴿لَوْلَا يَنْهَاهُمُ الرَّبَّانِيُّونَ وَالْأَحْبَارُ﴾ کښې دیهودو علماؤ ته احبار وئیلې شوی دی اود نصرانیانو عابدانوته رهبان اودهغوی علماؤ ته قسیس. په دې آیت کښې وئیلی شوی دی ﴿ذَٰلِكَ بِأَنَّ مِنْهُمْ قِسِّيسِينَ وَرُهْبَانًا﴾ د آیت مقصد خلق دخرابو علماء ګمراه صوفیانو او عابدانوته هوښیارول او ویرول دی. حضرت سفیان بن عیینه رحمه الله فرمائي، زمونږ په علماؤ کښې هغه ورانیږي په کومو کښې چه څه نه څه شائبه د یهودیت وی اود صوفیانواوعابدانوته په مونږ مسلمانانوکښې هغه ورانیږي په کوموکښې چه د نصرانیت شائبه وی. په صحیح حدیث شریف کښې دی چه تاسو به یقینًا د خپل ځان نه د وړاندینو په لار تګ کوني د داسې پوره مشابهت سره چه لږ شان فرق به هم نه وی. خلقو تپوس اوکړو چه د یهودو اونصاراؤ په لار؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل او هم د هغوی(١) او په بل روایت کښې دی چه خلقو تپوس اوکړو د فارسیانو او رومیانو په لار؟ حضور ﷺ اوفرمائیل نور کوم خلق دی(٢) نود هغوی د افعالواواقوالو نه ډیر بچ کیدل پکاردی. داځکه چه دامنصب اوریاست حاصلول او په دې طریقه سره دخلقو مال وهل غواړی. احبار یهود ته دجاهلیت په زمانه کښې ډیر رسوخ حاصل وو. دهغوی تحفې هدې ټیکسونه اوچراغی مقرر وې چه بغیرغوښتلوبه هغوی ته رسیدل. درسول الله ﷺ د نبوت نه پس دې لالچ هغوی د اسلام د قبلولونه منع اوساتل. خود حق د مقابلې په وجه د دې طرف نه هم خالی پاتې شو اود آخرت نه هم خلاص شو. ذلت او سپکاوې په هغوی باندې راوریدلو اود الله ﷻ په غضب کښې اخته شو او تباه اوبرباد شو. دا حرام خوره ډله په خپله هم دحق نه منع شو او نور ئې هم منع کړل. حق به ئې باطل سره ګډوډ کړو اوخلق به ئې د حق لارې نه منع کول. په جاهلانوکښې به کیناستل او ګپونه به ئې لګول چه مونږ خلق د حق لارې ته رابلو اودا ښکاره دهوکه وه هغوی خو د دوزخ طرف ته رابلونکی دی اود قیامت په ورځ به دوی بې یار اومددګار پریخودلې شی. دعالمانواوصوفیانو یعنی دواعظانو اوعابدانو ذکر کولو نه پس اوس د امیرانو دولتمندو او رئیسانو حال بیانولې شی. لکه څنګه چه دا دواړه ډلې په خپل مینځ کښې خراب خلق هم ساتی دغه شان په دې دریمه طبقه کښې هم شیطانان خلق وی. په عام توګه د دې دریو قسم خلقوپه عاموخلقوباندې اثر وی.ډلې ډلې امی خلق دوی سره بلکه دوی پسې وی نود دوی خرابیدل لکه د مذهبی دنیا خرابیدل دی.

**هره زمانه کښې دین دری قسمه خلقوخراب کړې دې::** لکه چه ابن المبارک رحمه الله وائی ﴿وهل افسدالدین الاالملوك واحبارسوء ورهبانها﴾ یعنی دین د واعظانو عالمانو صوفیانو اودریشانو د پلیتې طبقې د وجه نه

---

(١) صحیح بخاری کتاب الاعتصام بالکتاب والسنة باب قول النبی ﷺ لتتبعن سنن من کان قبلکم: ٧٣٢٠، صحیح مسلم: ٢٦٦٩، احمد: ٨٤/٣، ابن حبان: ٦٧٠٣.

(٢) صحیح بخاری حواله سابق: ٧٣١٩.

خرابیږي.

**زمونږ مال او دولت او د جهنم اُور او د کنز تعریف.-** کنز د شرع په اصطلاح کښې هغه مال ته وائي د کوم چه زکوٰة نه ادا کیږي. د حضرت ابن عمر ﷺ هم دا روایت دې[1] بلکه هغوی فرمائي چه د کوم مال زکوٰة ورکړې کیدې شي نو که هغه د اوومې زمکې لاندې هم وي نو هغه کنز نه دې او د کوم چه زکوٰة نه ادا کیږي که په زمکه باندې ښکاره خور پروت وي خو هغه کنز دې. د حضرت ابن عباس ﷺ، حضرت جابر ﷺ او حضرت ابوهریره ﷺ نه هم موقوفا او مرفوعا هم دغه روایت دې. حضرت عمر بن خطاب ﷺ هم دا فرمائي چه بې زکوٰة مال سره دغه مالدار داغلي شي د هغوی دخوئ حضرت عبدالله ﷺ نه روایت دې چه دا حکم د زکوٰة د نازلیدو نه وړاندې وود زکوٰة حکم نازلیدو سره دا د مال پاکوالي جوړکړو.[2] خلیفه برحق حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه الله او عراك بن مالك رحمه الله هم دا روایت کړې دې. چه دا د الله ﷻ د ارشاد ﴿ خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ ﴾ منسوخ کړې دې.

**دکثرت مال په قباحت او قلت مال په تعریف کښې کښې احادیث::** ابوامامه ﷺ فرمائي چه څلور زره او دې نه کم خو نفقه ده او دې نه زیات کنز دې خودا قول غریب دې. د مال د زیاتي په خرابوالي کښې او د مال د کمي تعریف کښې ډیر احادیث وارد شوی دی. د نمونې په توګه مونږ دلته یو څو نقل کوو. په مسند عبدالرزاق کښې دی. رسول الله ﷺ فرمائي د سرو زرو او سپینو زرو والا دپاره هلاکت دې. درې ځل د حضور ﷺ نه دا فرمان اوریدو سره په صحابه کرامو ﷺ باندې سخت اولګیدلو او هغوی د رسول الله ﷺ نه سوال اوکړو چه بیا مونږ کوم قسم مال اوساتو. حضرت عمر ﷺ حضور ﷺ ته دا حال بیان کړو او دا سوال ئې اوکړو نو حضور ﷺ اوفرمائیل چه ذکرکونکې ژبه، شکر کونکې زړه او ددین په کارونو کښې امداد کونکې ښځه[3] مسند احمد کښې دی چه د سرو زرو او سپینو زرو د خرابوالي دا آیت چه کله نازل شو او صحابه کرامو په خپل مینځ کښې مشهوره کړه نو حضرت عمر ﷺ اوفرمائیل واخلئ زه د حضور ﷺ نه معلومات کوم راځم. خپله سورلئ ئې تیزه کړه او د رسول الله ﷺ سره ملاوشو.[4] او په یوروایت کښې دی چه صحابه کرامو رضوان الله ﷻ اجمعین اوونیل بیا به مونږ د خپل اولاد د پاره څه پریږدو. هم په دې روایت کښې دی چه حضرت عمر ﷺ پسې شا شاته حضرت ثوبان ﷺ هم وو. حضور ﷺ د حضرت عمر ﷺ په سوال باندې اوفرمائیل چه الله ﷻ زکوٰة هم د دې د پاره فرض اوفرمائیلو چه روستونې مال پاك شي. د میراث مقررول ښائي چه په جمع کولو کښې هیڅ بدیت نشته. حضرت عمر ﷺ چه دا واوریده نو د خوشحالئ نه ئې تکبیرونه وئیل. حضور ﷺ اوفرمائیل واورئ زه تاسو ته بهترینه خزانه ښایم نیکه ښځه چه کله د هغې خاوند د هغې طرف ته نظر. واچوی او هغه دې خوشحاله کړي او چه کله حکم ورکړي نو هغه ئې زر په ځائ راوړي او چه کله موجود نه وي نو چه حفاظت اوکړي.[5] حسان بن عطیه رحمه الله وائي چه حضرت شداد بن اوس ﷺ په یوسفرکښې وو په یومنزل کښې راکوز شو او خپل غلام ته ئې اوفرمائیل چه چاړه راوړه او لوبه کوو. ما ته خرابه معلومه شوه هغه افسوس ښکاره کړو او وئې فرمائیل چه ما خود اسلام نه پس تر اوسه پورې داسې د بې احتیاطئ خبره کله هم نه وه کړې اوس ته دا هیره کړه او یو حدیث بیانوم هغه یاد کړه. رسول الله ﷺ فرمائي چه کله خلق سره زر او سپین زر راجمع کوی نو دا کلمې ډیرې ډیرې وایه ﴿ اللهم انی اسئلك الثبات فی الامر والعزیمة علی الرشد واسئلك

---

[1] ) موطا امام مالك كتاب الزكاة باب ماجاء فی الكنز: ۲۱ وسنده صحیح.
[2] ) صحیح بخاری كتاب التفسیر سورة براءة باب ﴿یوم یحمی علیها فی نارجهنم علیها فی نارجهنم فتكوی بها...﴾: ٤٦٦١.
[3] ) الطبری: ۱٤/ ۲۲۰، تفسیر القرآن لعبدالرزاق: ۳/ ۵۳.
[4] ) ترمذی كتاب تفسیرالقرآن باب ومن سورة التوبة: ۳۰۹٤ وهو حسن، احمد: ۵/ ۲۸۲، ابن ماجه: ۱۸۵٦.
[5] ) ابوداؤد كتاب الزكاة باب ماجاء فی حقوق المال: ۱٦٦٤، حاكم: ۲/ ۳۳۳، ابویعلی: ۲٤۹۹، بیهقی: ٤/ ۸۳.

شكر نعمتك واسئلك حسن عبادتك واسئلك قلبا سليما واسئلك لسانا صادقا واسئلك من خير ما تعلم واعوذبك من شر ما تعلم واستغفرك لما تعلم انك انت علام الغيوب﴾ يعني اي الله زه تانه د كار ثابت قدمي اود نيكو پوخوالي اوستا د نعمتونو شكريه اوستادعبادتونو ښه والي اودسلامتيا والازړه ربښتوني ژبه اوستا په علم كښې چه كومه ښيګړه ده اوستا په علم كښې چه كومه بدي ده د هغې نه پناه غوارم او كومې بدنى چه ته پيژنې د هغې نه استغفار طلب كوم زۀ منم چه ته د ټول غائب پيژندونكي ئې(١) په آيت كښې بيان دي چه د الله ﷻ په لار كښې مال نه خرچ كونكي اودا پټونكي په دردناك عذابونوسره خبر شئى. د قيامت په ورځ به هم دا مال ښه ګرم كړى لكه د اُور په شان به شي اودې سره به د هغوى تندى اړخونه ملاګانې داغلي شي اود رټلو په توګه به هغوى ته اوونيلې شي چه واخلئى د جمعوارئى مزه اوڅكئى. لكه چه په بل آيت كښې دي چه فرښتوته به حكم كولې شي د دوزخې ګرمو اوبو يو جام د دوى په سرونو باندې راواړه وه اودوى ته اووايه چه د عذاب مزه اوڅكئى. اوتاسو خو به ډير د عزت والا او بزرګان ګنړلې شونې. (٢) دا د هغې بدله ده. ثابته شوه چه كوم سړې كوم يو څيزمحبوب جوړكړى اود الله ﷻ د تابعدارئى نه هغه مقدم كوى هم د هغې سره به هغه ته عذاب وركولې شي. دې مالدارانو د مال په محبت كښې د الله ﷻ فرمان هيركړو نن هم په دې مال سره هغوى ته سزا وركولې شي. لكه څنګه چه به ابولهب په ښكاره د رسول الله ﷺ سره دښمنى كوله اود هغه ښځې به هم د هغه امداد كولو د قيامت په ورځ به هغه د اُور د نور تيزولو دپاره پخپله غاړه كښې رسئى اچولو سره لرګى راوړى اوهغه به بلوى اوهغه به په دې كښې سوزولې شي. دا مال چه د ټولونه ډير دلته خوښ كړې شوې دې هم دغه مال به د قيامت په ورځ د ټولو نه زيات مضر ثابتيږى هم دا به ګرمولې شي اوپه دې سره به دا غلې شي. حضرت عبدالله بن مسعود﷜ فرمائى د داسې مالدارانو بدنونه به دومره پلن او اوږده كولې شي چه يو يو دينار او درهم به په هغې راشى بيا به ټول مال جدا جدا كړې شي او په ټول بدن به ئې خوركړې شي اودا نه چه د يونه پس به بل داغ وى بلكه ټول به په يوخل وى. دا روايت مرفوعا هم راغلې دې خود دې روايت صحيح نه دى. والله اعلم. حضرت طاؤس ﷫ فرمائى چه د ده مال به يوه اژدها جوړه شي اوده پسې به شاته لګيدلې وى كوم يو اندام ئې چه مخامخ راشي هغه به چيچي. رسول الله ﷺ فرمائى چه څوك خپل خان پسې شاته خزانه پريږدى د ده دا مال به د قيامت په ورځ يو زهريلا اژدها جوړه شي د كوم په سترګو چه به ټاكې وى او ده پسې به اولكى دې به منډې وهى او تپوس به كوى چه ته څوك ئې؟ هغه به وائى چه ستا جمع كړې شوې مال اوخپل خان پسې پريخودلې خزانه نو آخر به ئې راونيسى اود ده لاس به اوچيچي اوبيا باقى بدن هم.(٣) په صحيح مسلم وغيره كښې دى چه كوم سړې د خپل مال زكوة ورنه كړى د هغه مال به د قيامت په ورځ د تختو په شان جوړكړې شي اودې سره به د هغه تندې اړخ او ملا داغلې شي. پنځوس زره كالو پورې خو به د خلقو فيصلې كيدو پورې د ده هم دغه حال وى بيا به ده ته د ده د منزل لار خودلې شي د جنت طرف ته يا د دوزخ طرف ته .(٤)

**دابو ذر غفارى د نورو صحابه كرامو نه اختلاف رائې::** امام بخارى ﷫ هم د دې آيت په تفسيركښې ليكى چه زيدبن وهب﷜ اوابوذر﷜سره په ربذه كښې ملاؤ شو او معلومات ئې اوكړو چه ته دلته څنګه راغلې ئې؟ هغه اووئيل چه مونږ په شام كښې وو نوما دا آيت﴿وَالَّذِيْنَ يَكْنِزُوْنَ﴾ تلاوت اوكړونوحضرت معاويه﷜ اوفرمائيل دا آيت زمونږ د مسلمانانو باره كښې نه دې دا خود اهل كتاب باره كښې دې. ما

---

(١) احمد/١٢٣.

(٢) ٤٤/الدخان:٤٨.

(٣) حاكم:١/٣٨٨-٣٨٩،ابن حبان:٣٢٥٨.

(٤) صحيح مسلم كتاب الزكاة باب اثم مانع الزكاة:٩٨٧، ابوداؤد:١٦٥٨، احمد:٢/٢٦٢،ابن حبان:٣٢٥٣.

اووئیل چه زمونږ او د هغوی ټولو په حق کښې دی.(۱) پدې کښې زما اود هغه اختلاف اوشو نو هغه زما خلاف خط د حضرت عثمان ﷺ دربار ته اولیګلو. زما په نوم د خلافت فرمان راغلو چه ته دلته راشه. زه چه کله مدینې منورې ته راغلم نو اومې کتل چه د خلورو واړو طرفونه خلقو راګیرکړم اودومره رش جوړ شو چه لکه هغوی دې نه وړاندې زه هډو لیدلې نه ووم. لنډه دا چه زه په مدینه کښې حصار شوم خود خلقو تګ راتګ تنګ کړم. آخر ما حضرت عثمان ﷺ ته شکایت اوکړو نو هغه ماته اوفرمائیل چه ته مدینې منورې سره نیزدې چرته صحرا ته لاړشه. ما د دې حکم هم تعمیل اوکړو خو دا مې اووئیل چه څه ما وئیلی دی والله دا به چرې هم پرې نخودې شم.(۲) د هغوی دا خیال ووچه د بال بچ د خوړلو نه څه بچ شی هغه جمع کول مطلقاً حرام دی. هم د دې هغوی فتوی ورکوله او هم داخبره ئې په خلقو کښې خوروله. اوخلق به ئې هم په دې باندې راضی کول هم د دې حکم به ئې ورکول اود دې مخالفت کونکی به ئې ښه وهل. حضرت معاویه ﷺ هغه منع کولو اوغوښتل چه چرته په خلقو کښې عام ضرراونقصان پیدا نه شی چه وئې نه منل نو هغه خلیفه ته شکایت اوکړو. امیر المؤمنین هغه راوغوښتو او په ربذه کښې د خان له اوسیدو حکم اوکړو. هغه هم هلته د حضرت عثمان ﷺ په خلافت کښې وفات شو.

**د ابو ذر د سخاوت انتهاء:**:حضرت امیر معاویه ﷺ یو ځل د امتحان په توګه یوزر اشرفئی اولیګلې هغوی د مابنام نه وړاندې وړاندې اخوا دیخوا د الله ﷻ په لارکښې خرچ کړې. مابنام هم هغه صاحب کوم چه هغه ته سحر یوزر اشرفئی ورکړې وې هغه راغلو او وئیل چه ماته غلطی شوې ده امیرمعاویه ﷺ هغه اشرفئی د یو بل صاحب د پاره رالیګلې وې. ما په غلطئی سره تاسو له درکړې هغه واپس کړه. هغه وئیل په تا باندې افسوس دې ما سره خو په هغې کښې یوه هم نشته. ښه ده چه کله زما مال راشی نو زه به تاته خپلې اشرفئی درکړم. ابن عباس ﷺ هم د دې آیت حکم عام ښائی. سدی ﷺ فرمائی چه دا آیت د اهل قبله باره کښې دې. احنف بن قیس ﷺ فرمائی چه زه مدینې منورې ته راغلم اومې کتل چه یوې ډلې د قریشو محفل لګولې ناست دی زه هم په دې مجلس کښې کیناستم. یو صاحب تشریف راوړو خیرنې پیرې لنډې کپړې اچولې وې په ډیر خراب حالت کښې راغلو اودریدو او وئې فرمائیل روپۍ پیسې جمع کونکی دې د دې نه خبردار وی چه د قیامت په ورځ به د دوزخ انګار د هغوی په سینه د پاسه اچولې شی کوم چه به د هډوکی نه پورې اوخی بیا به د روستونه وړاندې طرف ته سورې اوکړی او سوزونکې به بهر اوخی. ټولو خلقو سر ښکته کړو او کیناستل او چا هم څه اونه وئیل نو هغه هم واپس شو لاړو او یوې ستنې سره تکیه شو کیناستو. زه هغه له لاړم او تپوس مې ترې اوکړو زما په خیال دغه خلقو باندې ستاسو خبره خرابه اولګیدله. هغه اوفرمائیل دوی هیڅ نه پیژنی. (۳) په یوصحیح حدیث کښې دی رسول الله ﷺ ابوذر ﷺ ته اوفرمائیل که ماسره د اُحد د غر هومره سره زر هم وو نو ماته به دا خبره ښه نه معلومیدله چه درې ورځې تیریدو نه پس ما سره په دې کښې څه بچ پاتې شوې وې. او دا ده که د قرض د ادا کولو د پاره ماڅه کیخودل نو هغه بله خبره ده.(۴)

**دابو ذر ﷺ دمذهب دلیل:**:غالباً هم دې حدیث شریف دحضرت ابوذر ﷺ دا رایه مذهب جوړکړې وو کوم چه تاسو پورته اولوستل. والله اعلم. یوځل حضرت ابوذر ﷺ ته د هغه حصه ملاؤشوه نود هغه وینځې هم

---

(۱) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة براءة باب قوله ﴿والذین یکنزون الذهب والفضة ولاینفقونها.....﴾:۴۶۶۰.

(۲) صحیح بخاری کتاب الزکاة باب ماادی زکاته فلیس بکنز:۱۴۰۶.

(۳) صحیح بخاری حواله سابق:۱۴۰۷، صحیح مسلم:۹۹۲.

(۴) صحیح بخاری کتاب الرقاق باب قول النبی ﷺ(مایسرنی ان عندی مثل احدهذاذهبا):۶۴۴۴،صحیح مسلم:۹۹۱، ترمذی:۲۶۴۴، احمد:۵/۱۵۲، ابن حبان:۳۲۲۶.

هغه وخت ضروريات ورکول شروع کړه. دساما‌ن د اخستلو نه پس اووه بچ شوي نو حکم ئې اوکړو چه د دې فلوس مانئ پيسې (د کب پوستکي) واخله نو حضرت عبدالله بن صامت ﷺ اوفرمائيل دا خپل خان سره پريږده چه د ضرورت په وخت په کار راشي يا که څوك ميلمه راشي نو چه څه ضرورت پاتې نه شي. هغه اوفرمائيل چه نه ما نه زما خليلﷺ وعده اخستې چه کوم سره او سپين زر سر بند کړې شي او کيخودې شي نوهغه د کيخودونکي دپاره د اُورسروټکه ده تر کومې چه دالله ﷻ لار کښې ورنه کړې (۱)
په ابن عساکر کښې دی حضرت ابوسعيد ﷺ ته رسول اللهﷺ اوفرمائيل الله ﷻ سره فقير جوړ شه نوملاوشه غنی جوړيدو سره مه ملاويږه. هغه تپوس اوکړو دا څنګه؟ وئې فرمائيل سائل ردکوه مه اوچه څه ملاوشی هغه پټه وه مه. هغه وئيل چه دا به څنګه کولې شی حضورﷺ اوفرمائيل چه هم دغه دی ګنی نو اُور دې. د دې سند ضعيف دې.

**د اهل صفه د دوو کسانو واقعه:** د اهل صفه نه د يوکس انتقال اوشو. دوه ديناره يا دوه درهمه د هغه بچ پاتې شو حضورﷺ اوفرمائيل د اُور دوه داغونه دی تاسو خلق د خپل ملګری د جنازې مونځ اوکړئ. (۲) او په روايت کښې دی چه د اهل صفه نه ديوکس دوفات نه پس دتهبند د غوټې نه يو دينار راووتلو. نبي کريمﷺ اوفرمائيل دا‌وريوداغ. بيادويم وفات شو دهغه نه دوه ديناره راووتل نوحضورﷺ اوفرمائيل د اُور دوه داغه. دې فرمانی چه کوم خلق سره او سپين يعنی سره زر او سپين زر پريږدی اومړشی د يو يو قيراط په بدله کښې به د اُور يوه يوه تختئی جوړولې شی اود هغه د پښونه واخله د هغه د زنې پورې به د هغه بدن په دې اُور داغلې شی. دحضورﷺ فرمان دې چا چه دينار سره دينار او درهم سره درهم يوځای کړو راجمع کړې پريخودل د هغه څرمن به پلنولې شی په تندی اړخ او ملابه د دې داغ کولې شی. وانی به چه دا دې تاسو د خپل خان د پاره خزانه جوړوله اوس د دې بدله اوڅکه. د دې راوی سيف کذاب او متروك دې.

إِنَّ عِدَّةَ الشُّهُورِ عِندَ اللَّهِ اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا فِي
بيشکه | شماره دمياشتو | په نزدالله | دولس مياشتې دی | په
بيشکه د الله په نيز د الله په کتاب کښې د مياشتو شمير

كِتَابِ اللَّهِ يَوْمَ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ مِنْهَا أَرْبَعَةٌ
کتاب دالله کښی | دهغې ورځې نه | چې پيداکړی دی الله | اسمان | اوزمکه | دهغې نه | څلور
د کوم وخت نه چه الله زمکې او اسمانونه پيدا کړی دی دولس مياشتې دې | په دې کښې څلور مياشتې

حُرُمٌ ذَٰلِكَ الدِّينُ الْقَيِّمُ فَلَا تَظْلِمُوا فِيهِنَّ أَنفُسَكُمْ وَقَاتِلُوا
حرام دی | دا قاعده ده | صحيح | نوظلم مۀ کوئ | په دې کښی | په ځانونو خپلو باندې | اوجنګيږئ
معززې دی | دا محکم دين دې | نو په دې مياشتو کښې (دګناهونو په وجه) په خپلو ځانونو ظلم مه کوئ

الْمُشْرِكِينَ كَافَّةً كَمَا يُقَاتِلُونَكُمْ كَافَّةً وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ
دمشرکانو سره | ټول | لکه څنګه چې | هغوئ جنګيږی تاسو سره | ټول | اوپوهه شئ | چې بيشکه الله
اوکافرانو سره ټول جنګ کوئ لکه څنګه چه هغوی تاسو سره ټول جنګيږی | اوپه دې خبره (هم) پوهه شئ

(۱) احمد: ۱٥٦/٥، مسندالبزار: ۳۹۲٦، طبرانی: ٦۳٤، حلية الاولياء: ۱٦۲/۱.
(۲) احمد: ۱۰۱/۱، مسندالبزار: ۳٦٥، التاريخ الکبير: ۱٤۰/۲.

| مَعَ الْمُتَّقِينَ۝ |
| --- |
| دمتقيانوسره دي ا |
| چه د الله مدد د متقيانو سره دي ا |

قوله تعالى:: مِنْهَآ أَرْبَعَةٌ حُرُمٌ

**دڅلورو مياشتو حرمت دشروع نه وو:-** په مسند احمد کښې دی رسول مقبول صادق او مصدوق حضرت محمد رسول الله ﷺ دخپل حج په خطبه کښې ارشد فرمائيلي چه زمانه په تاويدو راتاويدوسره خپل اصليت له راغلې ده. دکال دولس مياشتې وی په کوموچه کښې څلوردحرمت او ادب والا دی. درې خو يوبل پسې ذوالقعده ذوالحجه او محرم او څلورمه رجب چه د مضر په نيز ده کومه چه د جمادی الاخر او شعبان په مينځ کښې ده. بيا ئې تپوس اوکړو دا کومه ورځ ده؟ مونږ ونيل الله ﷻ ته اود هغه رسول ﷺ ته پوره علم دې. حضور ﷺ خاموشی اختيار کړه مونږ ونيل کيدې شی چه حضور ﷺ به د دې ورځ څه بل نوم ايږدی. بيائې تپوس اوکړو چه دا يوم النحر يعنی د قربانئی د اختر ورځ نده؟ مونږ ونيل او. بيائی تپوس اوکړو دا کومه مياشت ده؟ مونږ ونيل الله ﷻ او د هغه رسول ښه پوهيږی. حضور ﷺ بيا خاموش شو نومونږ ونيل چه کيدې شی چه حضور ﷺ د دې څه بل نوم ايږدی. حضور ﷺ اوفرمائيل ذوالحجه نه ده؟مونږ ونيل او. بيائی تپوس اوکړو داکوم ښار دې؟ مونږ ونيل الله ﷻ اود هغه رسول ﷺ ښه پوهيږی. بيا خاموش شو نو مونږ ونيل چه کيدې شی د دې څه بل نوم ښائی بيائی اوفرمائيل دا د مکې ښار نه دې؟ مونږ ونيلې بې شکه. رسول الله ﷺ اوفرمائيل يادساتئی ستاسو وينې ستاسو مال او ستاسو عزتونه ستاسو په خپل مينځ کښې داسې د حرمت والا دی څنګه حرمت چه ستاسو د دې ورځ ستاسو د مياشت اوستاسو د دې ښار کښې دې تاسو به اوس اوس خپل رب سره ملاقات کوئې او هغه به تاسو نه ستاسو د اعمالو حساب اخلی. واورئی مانه پس ګمراه نه شئی چه د يوبل ستونه وهئې اوښايئی ما تبليغ کړې؟ واورئی چه تاسو کښې څوك موجود دی هغوئ له پکار دی چه کوم موجود نه دی هغوی ته دې اورسوی. ډير ممکن دی چه چاته ئی دوی اورسوی بعضې د هغوی نه هم ډير خيال ساتونکی وی.[1] اوپه روايت کښې دی چه د ايام تشريق په مينځ کښې په منی کښې د حجة الوداع د خطبې په موقعه دا ذکر دې.د ابوحمزه رقاشی رحمه الله تره چه صحابی رضی الله عنه دې وائی چه ددې خطبې په موقع د حضور ﷺ د اوښې جلب نيولې وو اود خلقو رش ئی منع کړې وو.دحضور ﷺ د ړومبنی جملې دامطلب دې چه کوم کمې زياتې وړاندې والې روستووالې د مياشتو د جهالت په زمانه کښې مشرکانو کولو هغه اوړيدو رااوړيدو سره دې وخت کښې ټيك شوی دی. کومه مياشت چه نن ده هغه په حقيقت کښې هم ده. لکه څنګه چه دمکې د فتح په موقعه حضور ﷺ فرمائيلی ووچه دا ښار د شروع د مخلوق نه باحرمت او باعزت دې. هغه نن هم د حرمت والا دې اوترقيامته پورې به دحرمت والا وی.په عربو کښې چه کوم دا رواج پريوتې وو چه د هغوی اکثر حجونه به د ذی الحجه په مياشت کښې نه وو. دې خل د رسول الله ﷺ د حج په موقعه دا خبره نه وه بلکه حج په خپله ټيك مياشت کښې وو. بعضې خلق دې سره دا هم وائی چه د صديق اکبر رضی الله عنه حج په نهم کال د ذی القعده په مياشت کښې وو خودا غور طلب قول دې. لکه چه مونږ به ئی سره د ثبوت بيانوو. په آيت ﴿إِنَّمَا النَّسِيٓءُ زِيَادَةٌ﴾ په تفسير کښې دی. د دې قول نه هم دډير غرابت والا .يوقول د بعضې سلفو داهم دې چه دې کال کښې يهود نصاری او مسلمانانو ټولو د حج په اتفاق سره دا ورځ وه يعنی د عيد الاضحی ورځ.

---

[1] صحيح بخاری کتاب الضاحی باب ومن قال الاضحی يوم النحر:۵۵۵۰، صحيح مسلم:۱۶۷۹، ابوداؤد:۱۹۴۸، ابن ماجه:۲۳۳، احمد:۳۷/۵، ابن حبان: ۳۸٤۸.

**د اسلام میاشتو وجه تسمیه:** "فصل ف" شیخ علم الدین سخاوی خپل کتاب "المشهورفی اسماء الایام والشهور" کښې لیکلی دی، د محرم میاشت ته محرم د دې د تعظیم د وجې نه وائی خوزما په نیزخود دې نوم وجه د دې د حرمت تائید دې ځکه چه عربو به د جاهلیت په زمانه کښې به دا بدلوله کله به نی حلالوله او کله به نې حراموله. د دې جمع محرمات "محارم" محاریم ده. د صفر وجه تسمیه دا ده چه په دې میاشت کښې به عموما د هغوی کورونه خالی وو ځکه چه دوی به جنګونو او سفرکښې روان وو. کله چه کور خالی شی نوعرب وائی (صفرالمکان) ددې جمع اصفار ده لکه ځنګه چه د جمل جمع اجمال ده. دربیع الاول دنوم سبب دا دې چه پدې میاشت کښې هغوی اودریږی. ارتباع وائی اقامت او اودریدو ته د دې جمع اربعاء ده. لکه د نصیب جمع انصباء. اود دې جمع اربعه ده لکه د رغیف جمع ارغفه ده. د ربیع الاخر د میاشتې نوم کیخودل هم د دې وجې نه ده. نولکه چه دا د اقامت دویمه میاشت ده. د جمادی الاولی د تسمیه وجه دا ده چه په دې میاشت کښې اوبه کلکیدلې یعنی واوره کیدلې. د دوی په حساب کښې به میاشتو ګردش نه کولو یعنی ټیک په هرموسم کښې به هره میاشت راتله خودا خبره څه حجت نه دې په دې وجه که د دې میاشتو حساب په سپوږمئی دې نو ښکاره خبره ده چه موسمی حالت به هره میاشت باندې هر کال یو شان نه پاتې کیږی اودا ممکن دی چه د دې میاشت نوم په کوم کال کیخودې شوې وی هغه کال دا میاشت په سخته یخنئی کښې راغلې وی او په اوبوکښې جمود راغلې وو. دغه شان یو شاعر هم دا وئیلی دی چه د جمادی سختې تیارې شپې په کوموکښې چه سپې هم په ګرانه یو نیم ځل غاپی. د دې جمع جمادیات لکه حباری او حباریات. دا مذکر او مؤنث دواړه قسمه استعمالیږی. جمادی الاولی او جمادالاخری ورته وائی. د جمادی الاخری د تسمیه وجه هم دا ده لکه دا داوبو واوره کیدو دویمه میاشت ده. رجب دا ماخوذدې د ترجیب نه. ترجیب وائی تعظیم ته ځکه چه دا میاشت د عظمت او عزت والا ده په دې وجه دې ته رجب وائی. د دې جمع ارجاب او رجبات ده. د شعبان نوم شعبان په دې وجه دې چه په دې کښې به عرب د لوټ مار د پاره اخوادیخوا جدا کیدل. د تشعب معنی ده جدا جدا کیدل نو د دې میاشتې هم دا نوم کیخودلې شو. د دې جمع شعابین اوشعبانات راځی. رمضان ته رمضان په دې وجه وائی چه په دې کښې به د اوبنو پښې د سختې ګرمئی په وجه سوزیدې(رمضت الفصال) هغه وخت ته وائی کله چه د اوبنو بچی سخت تنګی وی اود دې جمع رمضانات او رماضین او رامضه راځی. بعضې خلق وائی دا د الله ﷻ د نومونونه یو نوم دې. دا محض غلط او ناقابل التفات قول دې. زه وایم چه د دې باره کښې یوحدیث هم واردشوې دې. خو هغه ضعیف دې اوما د کتاب الصیام په شروع کښې ددې بیان اوکړو. شوال ماخوذ دې (شالت الابل) نه دامیاشت د اوښانود مستئی میاشت وه دوی به لکئی اوچتې کړې وې په دې وجه د دې میاشت نوم دا شو. د دې جمع شواویل، شواول او شوالات راځی. ذوالقعده یا ذوی القعده نوم کیدلو وجه ده چه په دې میاشت کښې به عرب خلق کیناستل نه به د جنګ د پاره وتل اونه د سفر د پاره. د دې جمع ذوات القعده ده. ذوالحجه ته دوالحجه ځکه وئیلې شی چه په دې میاشت کښې حج کیدلو په دې وجه د دې نوم مقرر شو. د دې جمع ذوات الحجه ده. دا خوږه وجه د دې میاشتو د نومونو.

**د اوو ورځو وجه تسمیه:** اوس د هفتې د ورځو نومونه اود دې نومونو جمع واورئی. د اتوار ورځې ته یوم الاحدوائی د دې جمع احاد اواوحاد او وحود راځی. د پیر ورځې ته اثنین وائی د دې جمع اثانین راځی. د نهې ورځ ته ثلاثا وائی دا مذکر هم لوستلې شی اومؤنث هم. د دې جمع ثلاثاوات او اثالث راځی. د چارشنبې ورځ ته اربعاءوائی ددې جمع اربعاوات او ارابیع ده. زیارت ته خمیس وائی ددې جمع اخمسه اخامس راځی. جمعه ته جمعه وائی د دې جمع ده جمع او جماعات. د خالی ورځ ته سبت وائی د سبت معنی ده قطع ځکه چه د هفتې د ورځو شمیر هم دلته ختمیږی ځکه دې ته سبت وائی

**قدریم عربوکښې د ورځو نومونه::** په قدیم عربوکښې د هفتې د ورځو نومونه دا وو. اول، اهون، جبار، دبار، مونس، عروبه، شیار. د قدیم خالص عربو په شعرونوکښې هم د ورځو نومونه کتې شی. قرآن کریم فرمانې چه په دې دولسو میاشتوکښې څلور د حرمت والا دی. د جاهلیت عربو به هم دا د حرمت والا منلې خود السبل نومې یوې ډلې به د خپل تشدد په وجه اتو میاشتو ته دحرمت والا وئیل. د حضور ﷺ په فرمان کښې رجب د قبیله مضر د طرف نه د اضافت کولو وجه دا ده چه کومې میاشت ته هغوی رجب میاشت وئیله په اصل کښې هم دغه میاشت د الله ﷻ په نیز هم د رجب میاشت وه. کومه چه د جمادی الاخری او شعبان په مینځ کښې ده. د قبیله ربیعه په نیز رجب شعبان او شوال په مینځ کښې میاشتې نوم یعنی رمضان نوم وو نو حضور ﷺ ښکاره کړه چه د حرمت والا رجب د مضر ده نه چه د ربیعه. په دې څلورو د حرمت میاشتو کښې درې یو بل پسې په دې مصلحت دی چه حاجیان د ذی القعدې په میاشت کښې اوځی نو چه هغه وخت کښې جنګ جګړې وهل ټکول او قتل اوقتال بند وی خلق په خپلوکورونوکښې ناست وی. بیا په ذی الحجه کښې د حج احکام ادا کول په امن او امان او په ښه شان سره اوشی اوبیا د محرم د حرمت په میاشت کښې کور ته واپس شی. د کال په مینځ کښې رجب د حرمت والا جوړولو غرض دا دې چه زائرین خپل دبیت الله د طواف شوق د عمرې په شکل کښې پوره کړی که د لرې لرې وی نو چه هغوی هم په ټوله میاشت کښې تګ راتګ اوکړی. هم دغه د الله ﷻ نیغ او آسان رښتونې دین دې. نود الله ﷻ د ارشاد مطابق تاسو د دې پاکو میاشتو حرمت اوکړئی. په دې کښې په خصوصیت سره د ګناهونونه بچ شئی، څکه چه په دې کښې د ګناهونو بدی نوره هم زیاتیږی لکه چه د حرم شریف ګناه د نورو ځایونود ګناهونونه زیاتیږی. د الله ﷻ فرمان دې چه څوك په حرم کښې د الحاد اراده په ظلم سره اوکړی مونږ به هغوی له دردناك عذاب ورکړو. (١)

دغه شان د دې محترمو میاشتو ګناه هم د نورو میاشتو د ګناه نه زیاتیږی. په دې وجه د امام شافعی رحمه الله اود علماؤ د یوې لوې ډلې په نیز د دې میاشتو د قتل دیت هم سخت دې. دغه شان په حرم کښې دننه د قتل اوذی محرم رشته دارقتل هم. ابن عباس رضی الله عنه فرمانې ﴿فیهن﴾نه مراد د ټول کال میاشتې دی. نوېدې ټولومیاشتو کښې دګناهونونه بچ شئی او خاص کر په دې څلورو میاشتوکښې چه د حرمت والا دی. ددې ډیر عزت دې په دې کښې ګناه د سزا په اعتبار اونیکئی د اجر او ثواب په اعتبار زیاتیږی.

**دحرمت په میاشتوکښې ګناه سزانوره هم زیاتیږی:** دقتاده رحمه الله قول دې چه دحرمت په میاشتوکښې د ګناه سزا اوبوج زیاتیږی. ظلم خو په هرحال کښې خراب څیز دې خو چه الله ﷻ خپل کوم امر غواړی زیاتوی.

**د الله ﷻ په مخلوقاتو کښې د درجاتو ذکر::** ګورئی الله ﷻ په خپل مخلوق کښې بعضې اوچت کړی دی په فرښتوکښې په انسانانو کښې خپل رسول ﷺ خوښ کړو دغه شان په کلام کښې خپل ذکر خوښ کړو اوپه زمکه کښې جماتونه خوښ کړل او دمیاشتو نه رمضان المبارك اودا څلور واړه میاشتې خوښې کړې اود ورځونه نې د جمعې ورځ او په شپوکښې د لیلة القدر شپه نو تاسو له د دې څیزونو د حرمت خیال ساتل پکار دی کومو ته چه الله ﷻ عظمت ورکړې دې. ددې امورو تعظیم د عقل مندو او هوښیاروخلقو په نیز دومره ضروری دې د کومو تعظیم چه څومره الله ﷻ خودلې دې. د دې د حرمت ادب نه کول حرام دی په دې کښې چه کوم کارونه حرام دی هغه حلال مه ګڼرئی اوچه کوم حلال دی هغه حرام مه جوړوئی لکه څنګه چه به اهل شرك کولو. دا د هغوی په کفر کښې د زیاتی خبره وه. بیافرمانې چه تاسو ټول کافرانو سره جهاد کوئې لکه څنګه چه هغوی ټول تاسو سره په جنګ کښې انختې دی.

---

(١) ۲۲/الحج:۲۵.

**حرمت دمیاشتو حرمت اوس هم باقی دې که نه منسوخ شوې دې::** دحرمت په دې څلورو میاشتو کښې د جنګ شروع کول منسوخ یا دمحکم کیدو باره کښې د علماؤ دوه اقواله دی. اول قول خودا چه دا منسوخ دې نو زیات مشهور هم دا دې. د دې آیت په الفاظوکه غوراوکړې شی چه اول خو فرمان اوشو پدې کښې ظلم مه کوئې بیائی مشرکانو سره دجنګ کولو اوفرمائیل.دظاهری الفاظونه خو معلومیږی چه دا حکم عام دې د حرمت میاشتې هم په دې کښې راغلې. که دا میاشتې د دې نه جدا وې نود دې د تیریدو قید به ورسره لګولې شوې وو. رسول الله ﷺ د طائف محاصره د ذوالقعده په میاشت کښې کړې وه چه د حرمت والا د میاشتو نه یوه ده لکه چه بخاری او مسلم کښې دی حضور ﷺ د هوازن قبیلې له د شوال په میاشت کښې تلې وو چه کله د هغوی هزیمت اوشو او د هغوی نه بچ شوی طائف ته اوتختیدل نو حضور ﷺ هلته لاړو او تر څلویښتو ورځو پورې ئې محاصره اوکړه او بیا بغیر فتح کولو د هغه خایه واپس تشریف راوړو.دا ثابت دی چه حضور ﷺ دحرمت په میاشت کښې محاصره کړې وه.دویم قول دادې چه دحرمت په میاشتوکښې دجنګ شروع کول حرام دی.اوددې میاشتو د حرمت حکم منسوخ نه دې.د الله ﷻ فرمان دې چه ربانی شعائراودحرمت والا میاشتې مه حلالوئی([1]) اوفرمان دې چه د حرمت والا میاشتې د حرمت والا د میاشتو په بدله کښې دی اوحرمتونه قصاص دی که څوك په تاسو زیاتې کوی نو تاسو هم د هغوی نه دغه شان د زیاتی بدله واخلئی([2]) اوفرمان دې ﴿فَإِذَا انسَلَخَ الْأَشْهُرُ الْحُرُمُ فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ﴾دحرمت دمیاشتودتیریدونه پس مشرکانوسره جهاد اوکړئی دا وړاندې بیان تیرشو چه دا څلور میاشتې په هرکال کښې نه چه د تسییر میاشتې کوم چه په دوو قولو کښې یو قول دې.

بیا فرمائی چه تاسو ټول مسلمانان هغوی سره داسې جنګیږئی لکه څنګه چه هغوی ټول تاسو سره جنګ کوی. کیدې شی چه دا حکم خپل ړومبی نه جدا نه وی او کیدې شی چه دا حکم بالکل نوې وی او جدا وی د مسلمانانو د رغبت ورکولو اوهغوی په جهاد د راضی کولو د پاره وی. نو فرمائی چه څنګه هغوی تاسو سره د جنګ کولو د پاره په ګرمئی سره راجمع کیږی اود څلورو واړو طرفونه راوخی نو تاسو هم خپل ټول د کلمې ویونکی راغونډ کړئی اوهغوی سره مقابله اوکړئی. دا هم ممکن دی چه په دې حمله کښې مسلمانانوته د حرمت په میاشتو کښې اجازت ورکړې وی کله چه حمله د هغوی د طرفنه وی.لکه چه آیت ﴿الْأَشْهُرُ الْحُرُمُ﴾کښې دی او لکه آیت ﴿وَلَا تُقَاتِلُوهُمْ عِندَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ حَتَّىٰ يُقَاتِلُوكُمْ﴾ کښې بیان دې چه دوی سره مسجد حرام کښې جنګ مه کوئې تر هغه وخته پورې چه هغوی هلته جنګ نه کوی. اوکه هغوی تاسو سره جنګ کوی نو تاسو هم هغوی سره اوجنګیږئی. هم دغه جواب د حضور ﷺ دحرمت په میاشتوکښې د طائف د محاصرې دې. په اصل کښې دا جنګ سلسله وه د هوازن او د هغوی د ثقفی حلیفانود جنګ. هم هغوی د جنګ شروع کړې وه.داخوادیخوانه ئی دمسلمانانو مخالفین راجمع کول اود جنګ دعوت ئی ورکولو نو حضور ﷺ د هغوی طرف ته وروړاندې شو خودا وړاندې کیدل هم د حرمت په میاشت کښې نه وو. دلته ئی ماتې اوخوړله نو دا خلق طائف ته د پټیدو د پاره لاړل اوهم هلته قلعه بند شو. حضور ﷺ د مرکز د خالی کولو د پاره نور هم وروړاندې شو. هغوی مسلمانانوته نقصان اورسولو د مسلمانانو یوه ډله ئی قتل کړه. بل خوا محاصره جاری وه په منجنیق وغیره سره ئی هغوی راګیر کړی وو. غرض دا چه د دې جنګ شروع د حرمت په میاشت کښې نه وه شوې خو جنګ اوږد شو نو د حرمت میاشت هم راغله. کله چه یو څوورځې تیرې شوې نو حضور ﷺ محاصره اخوا کړه نود جنګ جاری ساتل یوبل څیز دې اود جنګ شروع کول یو بل څیز دې د دې دېر

---

[1] د/المائدة:۲.

[2] د/البقرة: ۱۹٤.

مثالونه دی. والله اعلم.اوس په دې کښې چه کوم احادیث دی مونږ هغه په سیرت کښې هم بیان کړې دی. والله اعلم.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّمَا | النَّسِيٓءُ | زِيَادَةٌ | فِي الْكُفْرِ | يُضَلُّ | بِهِ |
| بیشکه | نسی | یوزیات کاردې | په کفرکښې | چې گمراه کیږي | په دې سره |

| رستوکول په کفر کښې زیادت دې | په دې سره هغه کسان گمراه کیږي کوم |
|---|

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الَّذِينَ | كَفَرُوا | يُحِلُّونَهُ | عَامًا | وَيُحَرِّمُونَهُ | عَامًا |
| هغه کسان | چې کافران شوی دی | حلالوی دوئ دغه حرامې میاشتې | یوکال | اوحراموی هغه | بل کال |

| کافران دی | دوی دغه معززې میاشتې یو کال حلالوی (اوجنگ په کښې جائز کوی) او بل کال ته ئې حراموی |
|---|---|

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لِيُوَاطِئُوا | عِدَّةَ | مَا | حَرَّمَ اللَّهُ | فَيُحِلُّوا |
| ددې دپاره چې پوره کړی دوئ | شمار | دهغې میاشتو | چې حرامې کړی دی الله | اوچې حلالې کړی دوئ |

| دادې دپاره کوی چه صرف هغه میاشتو شماربرابر کړی کومې چه الله حرامې کړی دی نو په دې طریقه دوی هغه |
|---|

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَا | حَرَّمَ اللَّهُ ۚ | زُيِّنَ | لَهُمْ | سُوٓءُ أَعْمَالِهِمْ ۗ | وَاللَّهُ |
| هغه میاشتې | چې حرام کړی دی الله | ښائسته شوی دی | دوئ ته | ناکاره عملونه ددوئ | اوالله |

| میاشتې حلالوی کومې چه الله حرامې کړی دی | دوی ته د دوی بد عملونه ښائسته شوی دی | او الله پاک |
|---|---|---|

| | | |
|---|---|---|
| لَا يَهْدِي | الْقَوْمَ | الْكَافِرِينَ ۝ |
| هدایت نه کوی | قوم | کافرته |

| نافرمانو خلقو ته توفیق د هدایت نه ورکوی |
|---|

قوله تعالى:: يُحِلُّونَهُ عَامًا وَيُحَرِّمُونَهُ عَامًا

**مشرکانودحرمت والا په میاشتوکښې هم بدلون اوکړو:**-دمشرکانود کفر زیاتی بیانولې شی چه هغوی څنګه خپله فاسده رائې اوخپل ناپاکه خواهش د الله ﷻ په شریعت کښې داخلوی اود الله ﷻ د دین احکام اولټه کوی رااولټه کوی. حرام حلالوی او حلال حرام جوړوی.ددریو میاشتوحرمت خو ئې صحیح اوساتلو بیانې دځلورمې میاشت حرمت داسې بدل کړو. محرم ئې د صفر په میاشت کښې کړو اود محرم حرمت ئې اونه کړو. د دې د پاره چه په کال کښې د ځلورو میاشتو حرمت هم پوره شی او د اصلی حرمت په میاشت کښې لوټ مار او قتل هم اوشی اوپه دې باندې به ئې په خپلو قصیدوکښې هم خان خودلو اوفخر سره به ئې داخپل کار ښکاره کولو.دهغوی یوسرداروجناده بن عوف بن امیه کنانی دې به هرکال حج ته راتلو د هغه کنیت ابوثمامه وو دا آوازبه ئې کولو چه د ابوثمامه په مقابله کښې څوك آوازنه شی اوچتولې.نه دهغه په خبره کښې څوك عیب لټولې شی.واورئې داول کال د صفرمیاشت حلال ده اود دویم کال حرام. نو یوکال به ئې د صفر حرمت نه ساتلو او بل کال به ئې ساتلو د هغوی د کفر د دې زیاتی بیان په دې آیت کښې دې. (١) دا سړی به په خپل خر باندې راتلو او چه کوم کال به ئې محرم د حرمت والا جوړولو خلقو به د هغې حرمت کولو او په کوم کال چه به هغه ونیل چه محرم مونږ حلاله کړو په صفرکښې او صفرمو حرامځ کړه په محرم کښې مو کړو. په دغه کال به په عربوکښې د

(١) الطبری: ١٤/٢٤٥.

هغه محرم د میاشتې حرمت چا نه کولو[1] يو قول داهم دې چه د بنی کنانه دې سړی ته به قلمس وئيلې کيدو ده به آواز کولو چه په دې کال د محرم حرمت مه نماځنی وړاندې کال به د محرم اوصفر دواړو حرمت وی. نود ده په وينا به د جاهليت په زمانه کښې عمل کيدلو. او اوس به د حرمت په اصلی مياشت کښې يو انسان د خپل پلار قاتل ليدلوسره د هغه طرف ته يو نظر هم نه اوچتولو او بيا چې دې راغلو نو پدغه د حرمت په مياتشو کښې لکه محرم کښې وئيل رابوباسی دا قاتل چه به ورته وئيل چې دمحرم مياشت ده ، ده به وئيل چې مونږ ئې مؤخر کوؤ. خودا قول څه ټيك نه معلوميږی ځکه چه قرآن کريم فرمائيلی دی چه هغوی په شميرلوکښې خومره مؤافقت کولو او په دې کښې به د خومره موافقت کيدلو هم نه بلکه په يوکال کښې به درې مياشتې پاتې کيدلې او په بل کال کښې به پنځه مياشتې پاتې کيدې. يوقول دا هم دې چه د الله ﷻ د طرف نه خو حج د ذی الحجه په مياشت کښې فرض وو خومشرکانو به د ذی الحجه مياشت ته محرم وئيلو او بيا به ئې برابرشمير کولو او په دې حساب چه به کومه ذی الحجه راتلله په هغې کښې به ئې حج کولواود محرم دمياشت نه به ئې خاموشی کوله اوددې به ئې هډو ذکر نه کولو.بيا به واپس شو او صفرنوم به ئې کيخودو بيا به ئې رجب جمادی الاخری او شعبان رمضان اورمضان شوال بيا به ئې ذوالقعده شوال ذی الحجه ذی القعده او محرم ته به ئې ذی الحجه وئيله. او په دې کښې به ئې حج کولو. بيا به ئې د دې اعاده کوله په دوکالو کښې به ئې برابر حج کولو. په کوم کال چه حضرت ابوبکر صديق ﷛ حج اوکړو په هغه کال د مشرکانو د دې شمير مطابق د دويم کال ذوالقعدې مياشت وو. د حضورﷺ د حج په موقع د ذی الحجه مياشت وه او هم د دې طرف ته حضورﷺ په خپله خطبه کښې اشاره اوفرمائيله او ارشاد اوشوچه زمانه په اخوا ديخوا اړولو رااړولو سره په خپل اصلی حالت راغله په کوم هيئت چه په دې وخت کښې وه. زمکه او آسمان الله ﷻ جوړکړی دی خودا قول هم صحيح نه معلوميږی په دې وجه هم که ذيقعده کښې د حضرت ابوبکرﷺ حج اوشو نو دا حج څنګه صحيح کيدې شی.

د الله ﷻ فرمان دې ﴿ وَأَذَانٌ مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ إِلَى النَّاسِ يَوْمَ الْحَجِّ الْأَكْبَرِ ﴾ يعنی د الله ﷻ اود هغه د رسولﷺ د طرف نه د نن د حج اکبر په ورځ د مشرکانونه د جداکيدو او ويزاريدو اعلان دې. هم د دې اعلان د حضرت صديق اکبرﷺ په حج کښې اوشو نوکه چرې دا حج د ذی الحجه په مياشت کښې نه وو نو الله ﷻ به دا ورځ د حج ورځ نه ګرځوله اوصرف د مياشتو وړاندېوالې روستووالې د کومو بيان چه په دې آيت کښې دې د ثابتولو د دې تکلف ضرورت هم نه وو ځکه چه هغه د دې نه بغيرهم ممکن دی. ځکه چه مشرکانو خو به يو کال د محرم الحرام مياشت حلاله ګرځوله اود دې په عوض به ئې د صفر مياشت د حرمت ګرځوله اود کال باقی مياشتې به په لخپل ځائ وې. بيا به ئې په دويم کال محرم حرام ګڼړلو اود دې حرمت اوعزت به ئې باقی ساتلو دې د پاره چه د کال څلور د حرمت مياشتې کومې چه د الله ﷻ د طرف نه مقرر وې د هغې په شمير کښې موافقت اوکړی نوکله خو به د حرمت والا درې مياشتې کومې چه پرله پسې دی په هغې کښې به ئې د آخری محرم مياشتې حرمت ساتلو اوکله به ئې هغه د صفر طرف ته مؤخر کوله. پاتې شو د رسول اللهﷺ فرمان مبارك چه زمانه تاوراتاو شوه او په خپل اصلی حالت کښې راغله يعنی په دې وخت کښې چه کومه مياشت د هغوی په نيز وه هم هغه مياشت به صحيح شميرکښې هم وه. د دې پوره بيان مونږ د دې نه وړاندې کړې دې. والله اعلم.

په ابی حاتم کښې دی چه عقبه کښې رسول اللهﷺ ولاړ وو مسلمانان د حضورﷺ سره راجمع شو حضورﷺ د الله ﷻ پوره حمد اوثنا بيان کړه ونی فرمائيل چه د مياشتو تاخير د شيطان د طرف نه به کفر کښې زياتې وو چه کافران دهوکه شی. هغوی به يو کال محرم د حرمت والا کولو او صفرد حلت

---

[1] ايضا: ۲٤٦/۱٤.

والا او بیا به نی محرم د حلت والاکولو(هم دا د هغوی هغه وراندیوالی او روستووالی وو کوم چه په دې آیت کښې بیان شوې دې. امام محمد بن اسحاق رحمه الله په خپل کتاب السیرة کښې په دې باندې ډیر ښه کلام کړې دې کوم چه ډیر ښکلې او مزیدار دې.
هغوی لیکی چه دا کار د ټولونه وړاندې کونکې قلمس وو(حذیفه بن عبد بن فقیم بن عدی بن عامر بن ثعلبه بن حارث بن مالك بن کنانه بن خذیمه بن مدرکه ابن الیاس بن مضر بن نزار بن معد بن عدنان) بیا د هغه خوئ عباد بیا د هغه خوئ قلع بیا د هغه خوئ امیه بیا د هغه خوئ عوف بیا د هغه خوئ ثمامه جناده هم د ده په زمانه کښې اسلام خورشو. عرب خلق به د حج نه فارغ شونو ده سره به راجمع شو دې به اودریدو نو هغوی ته به نی لکچر ورکړو اود زجب ذوالقعده او ذوالحجه حرمت به نی بیانولو او یوکال به نی محرم حلال کړو او محرم به نی صفر کړو اویوکال به نی هم محرم ته د حرمت والا ونیل چه د الله ﷻ د حرمت والا د میاشتو په شمیر برابر شی اود الله ﷻ حرام حلال هم شی.

| يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا مَا |
|---|
| اے هغه کسانو \| چې ایمان مو راوړې دې \| څه شوی دی |
| ای مؤمنانو! په تاسو باندې څه شوی دی ......... ......... |
| لَكُمْ إِذَا قِيلَ لَكُمُ انْفِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ اثَّاقَلْتُمْ إِلَى الْأَرْضِ |
| په تاسو \| کله چې \| اوونیلې شي \| تاسو ته \| چې اوځئ \| په لار د الله کښې \| انودرانه شئ تاسو \| ازمکې ته |
| کله چه تاسو ته (د جهاد په موقع) اوونیلې شي چه د الله په لار کښې جهاد اوکړئ نو تاسو زمکې ته درانه شئ |
| أَرَضِيتُمْ بِالْحَيَاةِ الدُّنْيَا مِنَ الْآخِرَةِ فَمَا مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا |
| آیا راضی شوئ تاسو \| په ژوند \| د دنیا \| په مقابله د آخرت کښې \| پس نه دې \| اسامان \| دژوند ددنیا |
| آیا تاسو د آخرت (د ژوند په مقابله کښې د دنیا ژوند خوښوئ (خویاد ساتئ) د دنیاوی ژوند نعمتونه |
| فِي الْآخِرَةِ إِلَّا قَلِيلٌ إِلَّا تَنْفِرُوا يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا أَلِيمًا |
| په آخرت کښې \| مگرلږ دې \| که تاسو اونه وتئ \| عذاب به درکړی تاسو ته الله \| عذاب \| درد ناك |
| د آخرت (په مقابله کښې) ډیر کم دی \| که تاسو د جهاد دپاره اونه وتلئ نو تاسو ته به دردونکې عذاب درکړی |
| وَيَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ وَلَا تَضُرُّوهُ شَيْئًا وَاللَّهُ عَلَى |
| اوبدل راولی \| قوم \| بی له تاسو نه \| اوبه نه رسوئ تاسو ضرر الله ته \| هیڅ قدرله \| اوالله \| په |
| اوستاسو په ځائې به نور خلق راولی \| اوتاسو (جهاد ته په نه تلو) الله ﷻ ته څه نقصان نشئ رسولې \| او الله |
| كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ |
| هر اخیز باندې \| قادر دې \| |
| دهر خیز د کولو طاقت لری \| |

**قوله تعالی: إِلَّا تَنْفِرُوا يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا أَلِيمًا**
**دجهاد نه پټیدونکو ته تنبیه:-** یوطرف ته خو سخته ګرمې وه اوبل طرف ته میوې پخې شوې وې اود ونو سورې زیات شوی وو په داسې وخت کښې رسول الله ﷺ د یواوږد سفرد پاره تیار شو په غزوه تبوك کښې د خان سره د تلود پاره ټولوته ارشاد اوفرمانیلو. څه خلق چه پاتې شوی وو هغوی ته نی چه کومه

تنبیه ورکړه د دې ایاتونو شروع هم ددې ایت نه ده چه کله تاسودالله ﷻ په لار کښې دجهاد دپاره راغواړی نوتاسو ولې په زمکې ته ځان اچوی.آیا په دې فانی څیزونو ددنیادآخرت باقی نعمتونه هیرونې. واورنی ددنیا خو د آخرت په مقابله کښې هیڅ حیثیت نشته. حضورﷺ خپلې د کلمې والا ګوتې ته اشاره اوکړه او ونی فرمائیل که څوك دا ګوته په سمندرکښې ورډوبه کړی اوراوئی باسی نو په دې باندې چه د سمندر په مقابله کښې کومې اوبه دی نو هم دومره مقابله د دنیا د آخرت سره ده.[1]
حضرت ابوهریره‌ؓ نه چا تپوس اوکړو چه ما اوریدلی دی ته حدیث بیانوې چه الله ﷻ د یوې نیکئ په بدله کښې یولاکهـ ثواب ورکوی. هغوی اوفرمائیل چه ما خو د دو لاکهو فرمان هم د رسول اللهﷺ نه اوریدلې دې. بیا هغه هم د دې آیت نه هم د دې جملې تلاوت اوکړو چه دنیا کومه تیره شوه اوکومه باقی ده هغه ټول د آخرت په مقابله کښې ډیر کم دی. روایت دې چه عبدالعزیزبن مروان رحمه الله د خپل مرګ په وخت کښې خپل کفن راوغوښتو او کتلو سره ئی اوفرمائیل زماخود دنیانه هم دغه حصه وه زه هم دومره دنیا اوړم او خم. بیائی شاته اوکتل او ونی ژړل. فرمائیلې افسوس دنیا ستا ډیرکم دی او ستا کم خو ډیر کم دی افسوس مونږ خو په دهوکه کښې پاتې شو. بیا د جهاد په پریخودو باندې الله ﷻ رټنه کوی چه سخت دردناك عذاب به وی.
یوه قبیله حضورﷺ د جهاد د پاره راوغوښتله هغوی راپانه سیدل نو الله ﷻ د هغوی نه باران بند کړو. بیا ئی اوفرمائیل چه په خپل زړه کښې خوشحالیږئی مه چه مونږ د رسول اللهﷺ امدادیان یو که تاسو صحیح نه شوئی نو الله ﷻ به تاسو برباد کړی او ستاسو په ځایْ به نور د رسول الله ﷺ ملګری کړی چه ستاسو په شان به نه وی.تاسو دالله ﷻ هیڅ نه شئ کولې داخبره هم نه ده چه تاسولاړنه شئ نو مجاهدین به جهاد نه شی کولې په الله ﷻکښې ټول قدرتونه دی هغه تاسو نه بغیر هم په خپلو دښمنانو باندې خپل غلامان غالب کولې شی. وئیلی شوی دی چه دا آیت ﴿ اِنْفِرُوْا خِفَافًا وَّثِقَالًا ﴾ او آیت ﴿مَاكَانَ لِاَهْلِ الْمَدِيْنَةِ وَمَنْ حَوْلَهُمْ مِّنَ الْاَعْرَابِ اَنْ يَّتَخَلَّفُوْا عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ ﴾دا ټول آیاتونه د آیت ﴿ وَمَا كَانَ الْمُؤْمِنُوْنَ لِيَنْفِرُوْا كَآفَّةً﴾ سره منسوخ شوی دی.خوامام ابن جریر رحمه الله د دې تردید کوی اوفرمائی چه دامنسوخ نه دی بلکه د دې آیاتونو مطلب دا دې چه چاته رسول اللهﷺ د جهاد د پاره د وتلواوفرمائی نو هغوی دې فرمان اوریدو سره اودریږی.فی الواقع داتوجیه ډیره ښکلې ده. والله اعلم.

اِلَّا تَنْصُرُوْهُ فَقَدْ نَصَرَهُ اللّٰهُ
که اونه کړو تاسو مدد دهغه | نو په تحقیق سره | مدد کړې وو دهغه سره | الله
| او که تاسو د ده (نبی کریم) سره مدد نه کوئ (نو د وی ستاسو د مدد څه حاجت هم نشته، بقینا د

اِذْ اَخْرَجَهُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ثَانِيَ اثْنَيْنِ اِذْ
کله چې | ویستلې وو هغه لره | هغه کسانو | چې کفر ئې کړې وو | حال دا چې هغه دویم وو | په دوو کښې | کله چې
د ده سره الله په هغه موقع مدد کړې وو کله چه کافرانو دې (دمکې نه) راویستې وو | او دوی دوه په دوه وو | په دغه وخت

هُمَا فِي الْغَارِ اِذْ يَقُوْلُ لِصَاحِبِهٖ لَا تَحْزَنْ اِنَّ اللّٰهَ
هغوی دواړه | په غار کښې وو | کله چې | هغه وئیل | ملګری خپل ته | مه غمژن کیږه | بیشکه | الله
دا دواړه (نبی کریم او ابوبکر) په غار (ثور) کښې وو انو دوی خپل ملګری ته اووئیل ته مه پریشانه کیږه الله

[1] صحیح مسلم کتاب الجنة باب فناء الدنیا وبیان الحشریوم القیامة ۲۸۵۸، ترمذی: ۲۳۲۳، ابن ماجه: ۴۱۰۸، احمد: ۴/۲۲۸.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بِجُنُوْدٍ | وَاَيَّدَهٗ | عَلَيْهِ | سَكِيْنَتَهٗ | فَاَنْزَلَ اللّٰهُ | مَعَنَا |
| په داسې لښکرو سره | او مضبوط ئې کړو هغه | په هغه باندې | ارام خپل | نو نازل کړو الله | زمونږ سره دې |
| د فرښتو سره) او کړو | او د ده مدد ئې په هغه لښکرو | | خپل ارام په ده راولیږلو | | زمونږ سره دې انو الله |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَكَلِمَةُ اللّٰهِ | السُّفْلٰى | كَفَرُوْا | الَّذِيْنَ | كَلِمَةَ | وَجَعَلَ | لَمْ تَرَوْهَا |
| او خبره دالله | ښکته | چې کافران وو | دهغه کسانو | خبره | او وې گرزوله | چې نه لیدو هغه تاسو |
| او دکافرانو د سازشونو په مقابله کښې | | الله ﷻ د کافرانو سازش ناکامه اوگرځولو | | | | چه تاسو نه لیدلې (دغه فرښتې) او |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| حَكِيْمٌ | وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ | الْعُلْيَا | هِيَ | |
| او حکمت والادې | والله غالب دې | اوچته ده | هم هغه | |
| صاحب د حکمت دې | او الله غالب | کامیابی وی | هم دالله تدبیر | |

**قوله تعالى: اِذْهُمَا فِي الْغَارِ**

**نبی کریم ﷺ اوصدیق اکبر رضی الله عنه د غار ملګری:-** که تاسو زما د رسول ﷺ امداد او تائیدپریږدئی نو زه د چا حاجت مند نه یم. زه پخپله د هغه امدادکونکې موید کافی اوحفاظت کونکې یم. یاد کړئی د هجرت په کال چه کافرانودحضور ﷺ د قتل یا قید یاد وطن نه د ویستلو سازش کړې وو اوحضور ﷺ د خپل رښتونی ملګری حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه سره یوازې د مکې مکرمې نه وتلې وو نو څوك د هغه امدادی وو.درې ورځې د دې ویرې نه په غارکښې تیرې کړې چه لټونکی ناامید شی او واپس لاړشی نود دې ځائ نه به اوځو اود مدینې منورې لاربه واخلو. صدیق اکبر رضی الله عنه به ساعت په ساعت ویریدلو چه چاته معلومه نه شی اوداسې نه وی چه هغوی رسول الله ﷺ (علیه افضل الصلوة والتسلیم) ته څه نقصان اورسوی.حضور ﷺ به هغه ته تسلی فرمائیله اوفرمائیل ئی چه ابوبکرا د دې دوو باره کښې ستا څه خیال دې د کومو دریم چه پخپله الله ﷻ دې[1] مسند احمد کښې دی چه حضرت ابوبکر رضی الله عنه بن ابوحقافه حضور ﷺ ته په غارکښې اووئیل که دې کافرانو کښې چا خپلو قدمونوته هم اوکتل نو هغوی به مونږ اووینی. حضور ﷺ اوفرمائیل چه ته هغه دوه څنګه ګڼړې د کومو دریم چه پخپله الله ﷻ دې. غرض دا چه په دې موقعوهم الله ﷻ سبحانه وتعالی د هغوی امداد اوکړو. بعضې بزرګانو فرمائیلی چه د دې نه مراد دا دې چه په حضرت ابوبکر رضی الله عنه باندې الله ﷻ د خپل طرف نه تسکین راولیګلو. د ابن عباس رضی الله عنه وغیره تفسیر هم دغه دې اود هغوی دلیل دا دې چه حضور ﷺ خو مطمئن سکون اوتکسین والا وو. خو پدې خاص حال کښې تسکین دنوې سر نه رالیګل ددې خلاف نه دی.ددې دپاره نی دې سره اوفرمائیل چه خپل غائبانه لښکرې نازل کړې اود هغه امداد نی اوکړو یعنی د فرښتو په ذریعه. الله ﷻ د کفر کلمه دباؤکړه اوخپله کلمه نی مشهوره کړه. شرك ئی ښکته کړو او توحید ئی اوچت کړو. د حضور ﷺ نه تپوس کیږی چه یو سړې دخپلې بهادرنی د پاره دویم دقومی حمیت دپاره اودریم دخلقو خوشحالولو د پاره جنګ کوی نو په دې کښې د الله ﷻ د لارې مجاهد څوك دی؟ حضور ﷺ اوفرمائیل څوك چه د الله ﷻ د کلمې د اوچتولو په نیت سره اوجنګیږی هغه د الله ﷻ د لارې مجاهد دې. [2] الله ﷻ په انتقام اخستلو باندې غالب دې. د چا امداد چه کول غواړی نو کوی. نه د هغه په وړاندې څوك

---

[1] صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة براءت باب قوله تعالی ﴿ثانی اثنین اذ هما فی الغار إذیقول لصاحبه....﴾:٤٦٦٢، صحیح مسلم:٢٣٨١، ترمذی:٣٠٩٦، احمد:٤/١.

[2] صحیح بخاری کتاب الجهاد باب ومن قاتل لتکون کلمة الله هی العلیا:٢٨١٠، صحیح مسلم:١٩٠٤، ابوداؤد:٢٥١٧، ترمذی:١٦٤٦، نسائی:٢٣١٦، ابن ماجه:٢٧٨٣، احمد:٣٩٢/٤

څه نه شي کولی د هغه اراده به څوك بدله کړي شي. څوك دي چه د هغه په وړاندې شونډې کولاؤکړي شي یا سترګې ملاؤ کړي شي. د هغه ټول اقوال اوافعال حکمت او مصلحت نیکئی او خوبونه ډك دي تعالی شانه وجل مجده.

| اِنْفِرُوْا | خِفَافًا | وَّثِقَالًا | وَّجَاهِدُوْا | بِاَمْوَالِكُمْ | وَاَنْفُسِكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوځئ | اکه سپك یئ | اوکه دارنهٔ | اوجهاداوکړئ | په مالونوخپلوسره | اوپه خانونوخپلوسره |

سپک اودرانهٔ (ټول دالله په لار کښې) اوځئ اوپه مالونواوخانونو سره د الله په لار کښې جهاد کوئ

| فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ | ذٰلِكُمْ | خَيْرٌ | لَّكُمْ | اِنْ | كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| په لاردالله کښې | داوټل ستاسو | بهتردی | ستاسودپاره | که چرې تاسو | پوهیږئ |

اکه تاسو پوهیږئ نو دا (په هرحالت کښې په جهاد کښې شرکت ستاسودپاره ډیر غوره دي

**قوله تعالی:: اِنْفِرُوْاخِفَافًاوَّثِقَالًا**

**دالله ﷻ په لارکښې اوځئ که سپک ئې که درانهٔ:**-وائي چه په سورة براءة کښې هم داآیت وړاندې تیر شوي دې[1]په دې کښې دی چه دغزوه تبوك دپاره ټولومسلمانانوسره د هادی امم رسول اللهﷺ وتل پکار دی. د اهل کتاب د کافرانو رومیانو سره د جهاد د پاره ټولومؤمنانوله تلل پکاردی. که زړه نی غواړی اوکه نه که آسان ورته ښکاره شي اوکه دروند ذکرکیږی چه څوك به د بوډاوالي او څوك به د بیمارئې عذر کوی نودا آیت نازل شو. بوډاګان او ځوانان ټولوته د پیغمبرﷺ سره د ملګرتیا کولوعام حکم اوشو د چا هیڅ عذر نه چلیږی. ابوطلحه ﷺ د دې آیت دا تفسیر کړې دې اود دې حکم په پوره کولوکښې د شام په زمکه کښې لاړل. او نصرانیانو سره ئې جهاد کولو تردې چه خان بښونکې ته ئې خان ورکړو رضی الله عنه وارضاه.

**د صحابه کرامو دجهاد جذبه::**او په یو روایت کښې دی یو ځل هغه قرآن کریم تلاوت کولو سره دې آیت ته اورسیدلو نو وئې فرمائیل چه زما رب خو زما په خیال بوډاګانو او ځوانانو ټولوته د جهاد د پاره تللو دعوت ورکړې دې. زما خوږو بچو زما سامان تیارکړئې. زه د شام ملك ته د جهاد د شرکت د پاره ضرور ځم. بچو وئیل باباجی دحضور اکرمﷺ د ژوندپورې تاسو د نبی کریم ﷺ په ماتحتئې کښې جهاد اوکړو. په خلافت صدیقی کښې تاسو د مجاهدینو سره وئې. خلافت فاروقی کښې هم تاسو مشهور مجاهد وئې اوس تاسو د جهاد نه ئې په کورکښې آرام اوکړئې. مونږ ستاد طرف نه د جهاد میدان ته اوځواود خپلو تورو کمال ښایو.خو هغه اونه منلو او هم هغه وخت د کورنه اووتلو د سمندرنه اخوا تلود پاره کشتئ واخسته روان شو.د منزل مقصود نه د یوځو ورځو په لار وو چه د سمندر په مینځ کښې روح پرور الله ﷻ ته روح حواله کړو. نهه ورځې کشتئ روانه وه خو یوه جزیره یا ټاپو ښکاره نه شو چه هغه هلته خښ کړې شوې وو. نهه ورځې پس په اوچه باندې کوز شو او هغه ئې لحد کښې ورخښ کړد تردغه وخت پورې د هغه لاش هم هغه شان وو.([2]رضی الله وارضاه.

**دخِفَافًاوَّثِقَالًا کښې تفسیرونه::**د ډیرو بزرګانو نه خفافًا او ثقالاً تفسیر نه ځوانان او بوډاګان مروی دی. که ځوان وی که بوډا امیر وی فارغ وی که مشغول وی که خوشحاله وی که تنګ زړه وی، که دروندوی یا سپك حاجت مند وی که کاریګر وی که آساني والا وی که سختئې والاوی که پیشور وی که سوداګروی

[1] الطبری:۲۷۰/۱٤.

[2] حاکم:۳۵۳/۳.

که قوي وی که کمزورې په کوم حالت کښې هم وی بغیرد عذر نه اودرېږي اود الله ﷻ د جهاد د پاره روان شی. د دې مسئلې تفصیل په توګه امام ابوعمرواوزاعی رحمه الله قول دې چه کله په ملك کښې دننه حمله وی نو مسلمانان سپك او سواره روان شی او چه کله د دې بندونو او سرحداتو په غاړو حمله وی نو سپك او درانه سواره او پیدل هر څنګه چه وی اوځنی اواودرېږئی.

**ایا دا ایت مبارک منسوخ شوې دې::** دبعضې حضراتو قول دې چه آیت ﴿فَلَوْلَا نَفَرَ﴾ سره دا حکم منسوخ شوې دې. په دې باندې ان شاء الله مونږ پوره رڼرا اچو. روایت دې چه د یو درروند بدن والا لوئ سړی هغوی ته خپل حال ښکاره کړو او اجازت ئې اوغوښتو خو هغوی انکار اوکړو اودا آیت نازل شو. خودا حکم په صحابه کرامو رضي الله عنهم باندې ګران تمام شو. بیا الله ﷻ دې ایت سره﴿لَيْسَ عَلَى الضُّعَفَاءِ﴾ دا منسوخ کړو. یعنی ضعیفان بیماران غریبانان او فقیران کله چه هغوی سره ترخرچ پورې نه وی او که هغوی د الله ﷻ د دین او شرع مصطفی ﷺ حامی طرفدار او خیرخواه وی نو میدان جنګ ته په نه تلوکښې څه بدی نشته. حضرت ابوایوب رضي الله عنه د اول غزوې نه واخله تول عمر پورې سوا د یو کال نه په هره یوه غزوه کښې موجود وو او فرمائیل به ئې که درروند وی اوکه سپك دواړو ته د وتلوحکم دې اود انسان حالت د دې دواړوحالتونه بغیرېل نه وی([1])حضرت ابوراشدحرانی رحمه الله وېناده چه ماحضرت مقداد بن اسود رضي الله عنه سور دسرکاررسالت مآب ﷺ حمص کښې اولیدوچه ډیرکمزورې شوې وو خو بیا هم په کجاوه کښې ناست وو اوجهاد له روان وو. نوما ورته اووئیل چه اوس خو شریعت تا معذوره ګڼړی بیا ته دا تکلیف ولې کوې. هغه اوفرمائیل چه واوره سورة البعوث یعنی سورهٔ برات زمونږ په وړاندې نازل شوې دې په کوم کښې چه حکم دې سپك او درانه تول جهاد ته ځنی([2])حضرت حیان بن زیدشرعی رحمه الله وائی چه مونږ صفوان بن عمرو والی حمص سره جراجمه طرف ته د جهاد د پاره لاړو ماد دمشق یو بزرك ډیر عمر والا اوکتلو چه په حمله کونکوکښې هغه هم په خپل اوښ باندې سور راروان دې. د هغه اوریځې د هغه په سترګو باندې راپریوتلې دی شیخ فانی شوې دې یعنی ډیر بوډا وو. ماورته اووئیل چه تره ته خو اوس د الله ﷻ په نیز هم معذوره ئې. دې اوریدو سره هغه د خپلو سترګونه اوریځې اوچتې کړې او دې فرمائیل چه وراره الله ﷻ په سپکوالی اودروندوالی دواړو حالاتوکښې زمونږ نه په جهادکښې د وتلو غوښتنه کړې ده. واوره چا سره چه د الله ﷻ محبت وی په هغوی باندې ازمېښت هم وی بیا په دې باندې ثابت قدم اوسیدو نه پس په هغه د الله ﷻ رحمت راورېږي. واوره د الله ﷻ ازمېښت شکر صبر ذکرالله اود الله ﷻ توحیدخالص سره کیږي. ([3])

**جهادکښې ددنیا اواخرت فائده::** دجهاد دحکم نه پس دزمکې او زمانې مالك په خپله لار کښې د رسول الله ﷺ په مرضئی کښې خان اومال خرچ کولو حکم ورکوی اوفرمائی چه د دنیا او آخرت ښیګړه په دې کښې ده. دنیاوی ګټه خو په دې کښې ده چه لږشان خرچ به اوکړې او ډیر غنیمت به ملاؤشی اود آخرت ګټه دا ده چه دې نه لویه بل څه نیکی نشته. نبی‌کریم ﷺ فرمائی د الله ﷻ په ذمه په دوو خبرو کښې یوه ضروری ده هغه مجاهد خو یا شهید کړی نود جنت مالك ئې جوړکړی اویا هغه د سلامتیا او غنیمت سره واپس راګرځوی([4]) پخپله د الله ﷻ اوچت ارشاد دې په تاسو جهاد فرض کړې شوې دې سره د دې نه چه تاسو د دې نه کرکه کوئې.خوډیر ممکن دی چه ستاسو نه غوښتونکې څیز په اصل کښې ستاسو

---

[1] حاکم:۳۵۸/۲.

[2] ابن جریر.

[3] الطبری: ۲٦٤/۱٤.)

[4] صحیح بخاری کتاب فرض الخمس باب قول النبی ﷺ(احلت لکم الغنائم):۳۲۲۳، صحیح مسلم:۱۸۷٦،موطاامام مالك : ٤٤٤،احمد:۳۹۹/۲.

د پاره بهتروي او کيدې شي چه ستاسو د غوښتنې خيز في الواقع ستاسو په حق کښې ډير مضر وي. واوره ته خو بالکل نادان ئې او الله ﷻ خو پوره پوره دانا او بينا دى. نبي کريم ﷺ يو سړي ته اوفرمائيل مسلمان شه هغه ونيل چه زړه خومې نه غواړي حضوراکرم ﷺ اوفرمائيل سره ددې چه نه ئې غواړې[1]

| |
|---|
| لَوْ كَانَ عَرَضًا قَرِيبًا وَّسَفَرًا قَاصِدًا لَّاتَّبَعُوكَ |
| اکه چرې وې ا فائده ا نزدې ا اوسفر ا در ميانه ا نو خامخا به پيروي کړې وه دوئ ستا |
| اکه چرته نفع (د حاصلولو په اعتبار سره) نزدې وې اوسفر درميانه وې نو دوی (منافقانو) ستا |
| وَلٰكِنْ بَعُدَتْ عَلَيْهِمُ الشُّقَّةُ ؕ وَسَيَحْلِفُونَ بِاللّٰهِ لَوِ |
| ليکن الرې شو اپه دوئ باندې امزل ااو زرده چې قسمونه به خورئ دوئ اپه الله اکه چرې |
| تابعدار کړې وې اخو گران شو دوئ ته مزل کول (نوځکه پاتې شول) اودوی به (تاسو ته) په الله قسمونه خوری |
| اسْتَطَعْنَا لَخَرَجْنَا مَعَكُمْ ۚ يُهْلِكُونَ أَنْفُسَهُمْ ۚ |
| طاقت وې زمونږ انوخامخا به وتلی وو مونږ ا تاسو سره اهلاك کوی دوئ ا خانونه خپل ا |
| که زمونږ وس کيدلې نو تاسو سره به وتلې وې ا (په دې دروغو قسمونو) خپل خانونه هلاکوی (چه گناهګاريږي) |
| وَاللّٰهُ يَعْلَمُ إِنَّهُمْ لَكٰذِبُونَ ﴿٤٢﴾ |
| اوالله پوهيږی اچې دوئ ادروغژن دی ا |
| او الله پوهيږی چه دوی دورغژن دی ا |

قوله تعالى:: وَسَيَحْلِفُونَ بِاللّٰهِ

**دمکاروخلقو په دهوکه کښې رانه شئ:** کوم خلق چه د غزوه تبوك د تلو نه منع شوې ووا و د هغې نه پس حضور ﷺ له راغله اوخپلې د دروغو اود ځان نه جوړشوی عذرونه ئې پيش کول هغوی په دې آيت کښې رټلې شی چه په حقيقت کښې دهغوی هيڅ معذوری نه وه. که چرته آسان غنيمت او يا د نيزدې سفر وو نو دا لالچيان به ورسره وو خود شام پورې سفرد هغوی پښې ماتې کړې اود دې مشقت خيال د هغوی ايمانونه ډډ يعنی خراب کړل.اوس دوی راغلل اود دروغوقسمونه خوری اود الله ﷻ رسول ﷺ ته دهوکه ورکوی. که څه عذر نه وې نومونږ به په يو ځائ د تلو دا عزت پريخودې وو؟ مونږ په زړه او ځان سره ستاسوپه خدمت کښې حاضريدو. الله ﷻ فرمائي چه ددوی ددروغوماته علم دې هغوی خو خپل ځانونه غرق کړل.

| |
|---|
| عَفَا اللّٰهُ عَنْكَ ۚ لِمَ أَذِنْتَ لَهُمْ |
| ا معافی اوکړه االله اتاته ا ولې ااجازت ورکړو تا ادوئ ته |
| االله تا ته معافی کړې ده اتا دوی (منافقانو) ته ولې (د ايساريدو) اجازت |
| حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكَ الَّذِينَ صَدَقُوا وَتَعْلَمَ |
| تر دې پورې اچې ښکاره شوې وې اتاته اهغه کسان اچې رښتني دی ااومعلوم کړې وې تا |
| ورکړو (اجازت بۀ دې نه ورکولو) تر دې چه تاته رشتينې کسان معلوم شوې وې ااودروغژن دې بيژندلې وې |

---

[1] احمد: ۱۰۹/۳، مسندابی یعلی: ۳۷۶۵، مجمع الزوائد: ۳۰۵/۵. (مسنداحمد)

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الْكٰذِبِيْنَ۝ | لَا | يَسْتَاْذِنُكَ | الَّذِيْنَ | يُؤْمِنُوْنَ | بِاللّٰهِ | وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ |
| دروغژن | انه غواړي | اجازت ستانه | هغه کسان | چې ایمان راوړي | په الله باندې | اوپه ورځ دآخرت باند |
| ..... ستانه هغه کسان (د جهاد نه د ایساریدو) اجازت نه غواړي اچه په الله او په ورځ د اخرت ایمان راوړي | | | | | | |
| اَنْ يُّجَاهِدُوْا | بِاَمْوَالِهِمْ | وَاَنْفُسِهِمْ ط | وَاللّٰهُ | عَلِيْمٌ | | |
| ددې نه چې جهاد اوکړي | په مالونو خپلو سره | اوپه نفسونوخپلوسره | اوالله | ښه عالم دې | | |
| چه (دالله په لار کښې) په خپلو ځانونو اومالونو سره جهاد اوکړي ا اوالله پاک متقیان خلق پیژني | | | | | | |
| بِالْمُتَّقِيْنَ۝ | اِنَّمَا يَسْتَاْذِنُكَ | الَّذِيْنَ | لَا يُؤْمِنُوْنَ | بِاللّٰهِ | | |
| په متقیانو باند | بیشکه اجازت غواړي ستانه | هغه کسان | چې ایمان نه راوړي | په الله باندې | | |
| بیشکه ستانه خو هغه خلق (د جهاد نه د ایساریدو) اجازت غواړي چه په الله ﷻ اود اخرت په ورځ | | | | | | |
| وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ | وَارْتَابَتْ | قُلُوْبُهُمْ | فَهُمْ فِيْ رَيْبِهِمْ | يَتَرَدَّدُوْنَ۝ | | |
| اوپه ورځ دآخرت باند | اوشکمن دي | زړونه دهغوئ | انو هغوئ په شك خپل كښې | سرګردانه دي | | |
| یقین نه ساتي ا اود دوی زړونو (د آخرت په باره کښې) شک کړي دې انو دوی په خپل شک کښې سرګردان دي | | | | | | |

**قوله تعالی:: لَا يَسْتَاْذِنُكَ الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ**

**رښتوني مسلمان حیلې اوبهانې نه جوړوي:-** دسبحانه وتعالی خپل محبوب سره څنګه د مینې نه ډکې خبرې کیږي.دسختې خبرې اورولو نه وړاندې د معافۍ اعلان اوروليٰ شي.دې نه پس د رخصت ورکولو عهد هم په سورۀ نور کښې ورکوی.اود الله ﷻ ارشاد کیږي. ﴿فَاِذَا اسْتَاْذَنُوْكَ لِبَعْضِ شَاْنِهِمْ فَاْذَنْ لِّمَنْ شِئْتَ مِنْهُمْ﴾ يعنې که په دوی کښې څوك تانه د خپل څه کاریاشغل په وجه اجازت غواړي نو ته چه چاته غواړې اجازت ورکولې شې. دا آيت د هغه کسانو باره کښې نازل شوې کومو چه په خپل مینځ کښې فیصله کړې وه چه د حضورﷺ نه خو اجازت اخلو که اجازت اوشو خو ډیره ښه ده اوکه اجازت رانه کړي نو بیا خو به هم په دې غزوه کښې شامليږو نه[1] د دې د پاره الله ﷻ فرمائی چه که دوی ته اجازت نه ملاویدو نو دومره فائده خو به خامخا کیدله چه د رښتیا عذرکونکی او بهانې کونکی به ښکاره کیدل، په نیك اوبدکښې به ښکاره فرق کیدو،اطاعت ګذار خو به حاضریدل او نافرمانه به سره د اجازت نه ملاویدلو هم نه وتل،خکه چه هغوی خوفیصله کړې وه که رسول اللهﷺ اجازت اوکړي اوکه نه اوکړي خو موږ به جهاد ته نه خو. په دې وجه الله ﷻ په دې آیت کښې د دې نه پس دا اوفرمائیل چه دا ممکن نه دی چه رښتونی اوایمانداران خلق د الله ﷻ په لارکښې د جهاد نه د منع کیدو اجازت تانه اوغواړي. هغوی خو جهاد د الله ﷻ د نیزدیکت منلو او خپل ځان او مال قربانولو خواهش مند دی او الله ﷻ هم د دې پرهیزګاره ډلې نه ښه خبردې.

**بې ایمانه همیشه ترددکښې وی::**بغیرد شرعی عذرنه بهانې جوړونکی د جهاد نه د منع کیدلو اجازت غوښتونکی خو بې ایمانه خلق دی د کومو چه د آخرت د کور د بدلې څه امید نشته. د دوی زړونه ترننه پورې ستادشریعت نه په شك شبه کښې دی دوی حیران اوپریشان دی که یو قدم د هغوی وړاندې خی نو دوه قدمه شاته خی دوی ثابت قدم او استقلال والا نه دی دوی خو هلاك كیدونكی دی دوی نه

---

[1] الطبری: ۲۷۳/۱٤.

اخوادی اونه دیخوادی دا دالله ﷻ گمراه کړي شوي دي ته به د دوی دصحیح کیدوهیڅ لار نه بیاموي

وَلَوْ أَرَادُوا الْخُرُوجَ لَأَعَدُّوا لَهُ عُدَّةً وَلَٰكِن

اوکه اراده وي ددوئ ا دوتلو ا نوخامخا تیار کړي به وو دوئ ادپاره ددي غزا ا اسباب ا لیکن

اوکه دوی (منافقانو د جهاد د) وتلو اراده لرله نو د هغي دپاره به ئي اسباب تیار کړي ووخو

كَرِهَ اللَّهُ انبِعَاثَهُمْ فَثَبَّطَهُمْ وَقِيلَ اقْعُدُوا

خوښ نه کړو الله ا پورته کیدل ددوئ ا نو سست ئي کړل دوئ ا اوورته اوونیلي شو اچي کینئ

الله ﷻ د دوی (جهاد دپاره) تلل نه خوښول نو دوی ئي سست کړل او دوی ته اوونیلی شو چه د ناستو

مَعَ الْقَاعِدِينَ ۝ لَوْ خَرَجُوا فِيكُم مَّا زَادُوكُمْ إِلَّا

دناستو خلقو سره ا که وتلي وي دوئ ا شریك په تاسو کښي ا نۀ به وۀ زیات کړي دوئ تاسوته امګر

ناستو کسانو سره کینئ او د دوی په نه تلو مه خفه کیږئ ځکه) که دوی تاسو سره وتلي وو.نو تاسو ته

خَبَالًا وَلَأَوْضَعُوا خِلَالَكُمْ يَبْغُونَكُمُ الْفِتْنَةَ

شر ا اوخامخابه منډي تړي وهلي دوئ اپه منځ ستاسو کښي اپه داحال چي لټوله به دوی تاسوته ا فتنه

به ئي د نقصان نه سوا بل څه ته وو رسولي او دوی به خامخا د نقصان رسولو دپاره ستاسو په مینځ کښي کوشش‌ونه کړي وو

وَفِيكُمْ سَمَّاعُونَ لَهُمْ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِالظَّالِمِينَ ۝

اوشته په تاسو کښي اغوږا ایښودونکی اهغوئ دپاره ا اوالله ا ښه پوهه دي ا په ظالمانو ا

اوپه تاسو کښي (دوی ته د خبرو اورولو دپاره) غوږ کیخودونکی هم شته او الله په ظالمانو پوهه دي

**قوله تعالی:: مَّا زَادُوكُمْ إِلَّا خَبَالًا**

**دمنافقان دتکلیفونو او شیطانو تذکره:** دوی عذر کوی. دهغوی د غلطیدو یو ظاهری دلیل دا هم دي که د هغوی اراده وه نوکم ازکم سامان دسفر خو به ئی تیارولو خودوی خود اعلان او حکم نه پس هم ورځي تیرلوباندي لاس په لاس کیخودي او ناست دی. یو ډکي ئی هم اخوا دیخوا نه کړو. خبره دا ده چه د الله ﷻ هغوی تاسو سره وتل خوښ نه وو په دي وجه ئی هغوی روستو کړو او په قدرتی توګه ئی دا اوونیلي شو چه تاسو دناستو خلقو سره ملګرتیا اوکړئی. واورئی د هغوی د ناخوښه کولووجه داوه چه دوی پوره نامرداود اعلی درجي بزدل او ویریدونکی دی. که دوی تاسره وونو دلته پاړه اوخوزیده او هلته دوی راپریوتل اودا مثال به ئی په اصل کښي خودلو اودوی سره به په تاسوکښي هم فساد خوریدلو. دوی به د اخوانه دیخوا اودیخوا نه اخواخبري جوړولي او خبري اوړدولو سره به ئی خپل مینځ کښي تفرقه اچوله اودښمنی به ئی جوړوله اوڅه نوي فتنه به ئی اودروله اوتاسو به ئی په خپل مینځ کښي اخته کولي.دهغوی منونکی اودهغوی هم خیال اودهغوی پالیسئی ته په ښه نظرکتونکی پخپله په تاسو کښي موجود دی اود خپل ساده توب په وجه د هغوی د شیطانیانونه بي خبره دی. د کوم نتیجه چه د مؤمنانو باره کښي ډیره خرابه راڅی په خپل مینځ کښي شر اوفساد خوریږی.د مجاهد رحمه الله وغیره قول دي چه مطلب دا دي چه د هغوی خبري کونکی د هغوی سی آئی ډی اود هغوی جاسوس هم په تاسو کښي لګیدلي دی چه ستاسود ذري ذري خبري هغوی ته رسوی.خودا معنی کولو سره هغه لطافت باقی نه پاتي کیږی کوم چه د آیت د شروع نه دی یعنی ددي خلقوتاسو سره نه وتل الله ﷻ ته به دي وجه

هم ناخوبنه وو چه په تاسوي كښې بعضې داسې هم شته چه د هغوى منونكى دى. دا خو بالكل صحيح دى خود جاسوسئى څه خصوصيت د هغوى د وتلو د وجې دپاره نه شى كيدې. په دې وجه د قتاده ﷺ وغيره مفسرينو قول هم دغه دې.

**منافقانان اكثر د كافرانو جاسوسان وى::** امام محمد بن اسحق ﷺ فرمائى چه په اجازت غوښتلو كښې عبدالله بن ابى بن سلول اوجدبن قيس هم وو اوهم دغه لوئ لوئ رئيسان اود اثرخاوندان منافقان وو. الله ﷻ هغوى لرې اوغورزول. كه چرې دوى ورسره وې نود هغوى مخامخ منونكى به هغوى سره شوې وو اود مسلمانانو د نقصان سبب به جوړشوې وو. په محمدى لښكر كښې به ګډوډوالې خورشوې وو(۱) ځكه چه داخلق د وجاهت والا وو اوڅه مسلمانان د هغوى د حال نه ناخبره كيدو په وجه د هغوى د ظاهرى اسلام اوغوړو خبرو باندې مفتون وو اوتر اوسه پورې د هغوى په زړه كښې د دوى محبت وو اودا د هغوى د لاعلمئى په وجه وو.

**دمنافقانو نه وتلو كښې د مسلمانانو خير دې ::** ربښتيا دى چه ټول علم هم الله ﷻ ته دې چه غائب حاضر شوې وى اوكيدونكى ټول په هغوى ښكاره شى هم ددې علم غيب په بنياد هغه فرمائى چه تاسو مسلمانان د هغوى نه وتل غنيمت اوګڼرئى كه دوى وائى نو نور فتنه او فساد به كيدلو. نه به نى خپله كول اونه به نى نور پريخودل. هم په دې وجه ارشاد دې كه كافران بيا دنياته واپس كړې شى نو د نوى سر نه به بيا هم هغه كوى كوم نه چه منع شوې وو اودوى به هم دروغژن په دروغژن پاتې شى (۲) او په بل آيت كښې دى كه چرې علم د الله ﷻ كښې د هغوى په زړونوكښې لږشان هم خيروې نو الله ﷻ به خامخا هغوى ته اورولو اوس خودا حال دې چه كه اورى هم نو مخ اړلوسره واپس شى. (۳) په بل ځائ كښې دى كه چرې مونږ په دوى باندې ليكلې وې چه تاسو هم په خپل مينځ كښې د مرګ لوبه اوكړئى ياد وطن نه اوځئى دډيروكمو خلقونه بغيردوى به هيڅ كله هم دا نه كول.اوسره ددې چه دا به دهغوى په حق كښې بهتر اوښه وه چه كوم نصيحت دوى ته اوكړې شى هغه پوره كړى ددې دپاره چه پدې صورت كښې مونږ دخپل طرف نه اجر عظيم وركړو او نيغه لار ورته اوښايو. (۴) نور هم دا شان ډير آياتونه دى.

| لَقَدِ ابۡتَغَوُا الۡفِتۡنَةَ مِنۡ قَبۡلُ وَقَلَّبُوۡا لَكَ |
|---|
| په تحقيق سره كوشش كړې دې دوئ ادفتنې ا دمخكښې نه اولټولى دى دوى استا د ناكام كولو |
| اودوى د دې (غزوې نه) وړاندې (هم تاسو ته) د نقصان رسولو كوشش كړې وو اوستا خلاف نې تدبيرونه |
| الۡاُمُوۡرَ حَتّٰى جَآءَ الۡحَقُّ وَظَهَرَ اَمۡرُ اللّٰهِ وَهُمۡ كٰرِهُوۡنَ ﴿۴۸﴾ |
| ټول تدبيرونه ا تردې پورې اچې راغلې حق اوغالب شو دين دالله ا اودوئ ا نهٔ خوښونكى وؤ |
| جوړ كړى وو اتر دې چې حق راغلې اود الله دين غالب شو په داسې حال كښې چه دوى (داغلبه) بده ګڼړى |

قوله تعالى:: لَقَدِ ابۡتَغَوُا الۡفِتۡنَةَ

**منافق د فتنې دپاره دموقعې په لټون كښې وى:-** الله ﷻ د منافقانونه د نفرت كولو باره كښې فرمائى چه آيا دوى هيركړچه د مودونه خو دوى د فتنه او فساد اُور لګولې وو اوستا د كارد اولته كولو شل قسمه تدبيرونه نى كړى دى. مدينې ته د حضورﷺ په راتلو باندې ټول عرب يوشو اود مصيبتونو باران

۱) الطبرى: ۱٤/۲۷۷.
۲) ٦/الانعام: ۲۸.
۳) ۸/الانفال: ۲۳.
۴) ٤/النساء: ٦٦.

نی په حضور ﷺ باندې راوورولو د بهر نه هغوی حمله اوکړه اودننه نه د مدینې یهودیانو او منافقانو بغاوت اوکړو. خو الله ﷻ هم په یوه ورځ د ټولو کمانونه راکوز کړل کړل اود هغوی جوړونه نی سست کړل، د هغوی جوش نی یخ کړو. دبدرجنګ دهغوی هوش اوحواس ختم کړل اودهغوی ارمانونه ئی حلال کړل. دمنافقانوسردارعبدالله بن أبی صفا ونیلې وو چه اوس بس دې خلقوزمونږ طاقت پاتې نه شو.اوس ددې نه بغیر بله لارنشته چه په ظاهره داسلام موافقت اوکړې شی اوپه زړه کښې چه موڅه دی نو دې وخت چه راشي په وخت به کتلې شي.بیاچه څومره دحق اوچتوالي اودتوحید پورته والي کیدو دوی به سوزیدل.آخرالله ﷻ دحق قدمونه کلك کړل اودالله ﷻ کلمه غالب راغله اودوی هسې خپلې خیټې درزولې.

| وَمِنْهُمْ | مَّنْ | يَّقُوْلُ | ائْذَنْ لِّيْ | وَلَا تَفْتِنِّيْ ؕ | اَلَا |
|---|---|---|---|---|---|
| اوخینی ددوئ نه | اهغه څوك دی | اچې وائي | اجازت راکړه ماله | اومه اچوه ما په فتنه کښې | اخبردار |

اوپه دوی (منافقانو) کښې څه داسې دی (تاته) وائی ماته (دنه تلو) اجازت اوکړه اوما په ازمائش کښې مه اچوه

| فِي الْفِتْنَةِ | سَقَطُوْا ؕ | وَاِنَّ | جَهَنَّمَ | لَمُحِيْطَةٌ | بِالْكٰفِرِيْنَ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| په فتنه کښی | اپریوتلی دی دوئ | اوبیشکه | ادوزخ | اخامخاچاپیره کیدونکې دی | ا د کافرانو نه |

خبردار دوی (د نفاق په) فتنه کښې ورپریوتی دی | اوجهنم کافرانو لره راګیرونکې دی (بچ کیدې ترې نشی)

**قوله تعالی:: اَلَا فِي الْفِتْنَةِ سَقَطُوْا ؕ**

**منافق پخپله فتنه ده**:- جدبن قیس ته رسول اکرم ﷺ اوفرمائیل دې کال کښې به د نصرانیانو د وطن ویستلوکښې ته زمونږ سره امداد کوې. نوهغه ونیل یارسول الله ﷺ ما خو معاف کړه زما ټول قوم نه پته ده چه زه دښځو ډیر خوښونکې یم. عیسائی ښځوته په کتو خو به زه خپل نفس منع نه کړې شم. حضور ﷺ د هغه نه مخ واړولو. هم د دې بیان په دې آیت کښې دی چه دې منافق دا بهانه جوړه کړه سره د دې چه هغه خو په فتنه کښې پریوتې وو. د رسول الله ﷺ ملګرتیا پریخودل د جهاد نه مخ اړول دا څه کمه فتنه وه [1] یوپه کښې دا منافق د بنو سلمه قبیلې لوئ مشر وو. نبیٔ کریم ﷺ چه کله د دې قبیلې د خلقو نه معلومات اوکړل چه ستاسو سردار څوك دې نو هغوی اوونیل جدبن قیس چه ډیر شوم او بخیل دی. حضور ﷺ اوفرمائیل چه د بخل نه علاوه بله هم څه خرابه بیماری ده په ده کښې. واورئی اوس به ستاسوسردار خوان سپین ښائسته بشربن براء بن معرور وی [2] دوزخ کافران راګیرونکې دې نه به هغوی د دې نه بچ شي نه به اوتختی اونه به خلاصې بیاموندې شي.

| اِنْ تُصِبْكَ | حَسَنَةٌ | تَسُؤْهُمْ ۚ | وَاِنْ تُصِبْكَ | مُصِيْبَةٌ | يَّقُوْلُوْا |
|---|---|---|---|---|---|
| کَه اورسیږی تاته | ا څه ښیګړه | ا نوخفه کوی دوئ لره | اوکه اورسیږی تاته | ا څه مصیبت | انووائی دوئ |

که تا ته څه خوشحالی اورسی نو دوی خفه کوی | اوکه تاته څه تکلیف اورسی نو دوی دا وائی چه

| قَدْ اَخَذْنَآ | اَمْرَنَا | مِنْ قَبْلُ | وَيَتَوَلَّوْا | وَّهُمْ | فَرِحُوْنَ ۝ | قُلْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نیولې ووزمونږ | اکارخپل | ادمخکښی نه | اومخ اړوی دوئ | اوحال دا چې دوئ | اخوشحاله وی | ا ورته اووایه |

مونږ د وړاندې نه دخپل حفاظت بندوبست کړې وو | او د خوشحالئ په حالت کښې مخ اړوی | ته (ورته) اووایه

[1] الطبری: ۲۸۷/۱٤.
[2] حاکم: ۲۱۹/۳، مجمع الزوائد: ۳۱۵/۹.

| لَنْ يُّصِيْبَنَآ | اِلَّا مَا | كَتَبَ اللّٰهُ | لَنَا ۚ | هُوَ مَوْلٰنَا ۚ | وَعَلَى |
|---|---|---|---|---|---|
| چي هر گز نه رارسي مونږ ته | مگر هغه څه | چي ليکلي دي الله | دپاره زمونږ | هغه مولى دي زمونږ | او په |

مونږ ته صرف هغه تکلیف رسي کوم چه زمونږ دپاره الله ﷻ لیکلي دي هغه زمونږ کارساز دي

| اللّٰهِ | فَلْيَتَوَكَّلِ | الْمُؤْمِنُوْنَ۝ |
|---|---|---|
| الله باندي | پس پکاردي چي توکل اوکري | مومنان |

اوخاص په الله دي مؤمنان بهروسه اوکري

قوله تعالى: اِنْ تُصِبْكَ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ

**دمسلمانانو خوشحالي په منافقانو درنه وي:-** د دي خراب باطن د خلقود اندروني خباثت بيان کيږي چه د مسلمانانو په فتح اونصرت سره د دوی دبنيګړي او ترقني نه د هغوی په تن اوبدن کنبي اور لګي او که ناخاپي دلته د هغوی خلاف وی نو په چغو چغود خپلي چالاکني افساني واني.چه صاحبه د دي وجي خو مونږ د دوی نه بچ پاتي شوي وو اود خوشحالني نه بجاني غږوی. الله ﷻ فرماني چه دوی ته جواب ورکړه چه غم خفګان اوراحت او مونږ پخپله د الله ﷻ دتقدير اودهغه د منشاماتحت يو.هغه زمونږ مولا دي هغه زمونږ آقا دي هغه زمونږ پناه دي مونږ مؤمنان يو اود مؤمنانو بهروسه په هغه باندي وي. هغه زمونږ د پاره کافي دي او بس دي هغه زمونږ کارساز دي او ډيربنه کارسازدي.

| قُلْ | هَلْ تَرَبَّصُوْنَ | بِنَآ | اِلَّآ |
|---|---|---|---|
| ورته اووايه | انتظارنه کوئ تاسو | زمونږ په حقله | مگر |

ته (ورته) اووايه چه تاسو زمونږ دپاره په دوو کنبي د يوي

| اِحْدَى | الْحُسْنَيَيْنِ ۖ | وَنَحْنُ | نَتَرَبَّصُ | بِكُمْ | اَنْ يُّصِيْبَكُمُ | اللّٰهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ديوي بنيګړي | ددوو بنيګړونه | اومونږ | انتظار کوو | استاسو په حقله | چي دررسوی تاسو ته | الله |

خيګړي انتظار کوئ چه يا به راته فتح حاصل شي اويا شهادت، اومونږ ستاسو په باره کنبي د دي انتظار کوو

| بِعَذَابٍ مِّنْ عِنْدِهٖٓ | اَوْ بِاَيْدِيْنَا ۖ | فَتَرَبَّصُوْٓا | اِنَّا | مَعَكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| عذاب دطرفه خپل نه | يا په لاسونو زمونږ | انو انتظار کوئ تاسو | بيشکه مونږ هم | تاسو سره |

چه د خپل طرفه يا زمونږ په لاسونو به تاسو ته عذاب درکړی نو تاسو (زمونږ د هلاکت) انتظار کوئ مونږ

| مُّتَرَبِّصُوْنَ۝ | قُلْ | اَنْفِقُوْا | طَوْعًا | اَوْ كَرْهًا | لَّنْ يُّتَقَبَّلَ |
|---|---|---|---|---|---|
| انتظارکونکي يو | اووايه | که خرچ کوئ | په رضاسره | يا په ناخوبنئ سره | هرگزبه قبول نه کړي شي |

ستاسو د هلاکت انتظار کونکي يو ته (ورته) اووايه که په خوبنه خرچ کوئ اوکه په ناخوبنه هيڅ کله به

| مِنْكُمْ ۖ | اِنَّكُمْ | كُنْتُمْ | قَوْمًا | فٰسِقِيْنَ۝ | وَمَا مَنَعَهُمْ | اَنْ تُقْبَلَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ستاسو نه | بيشکه چي تاسو | يئ هم | تاسو يو قوم | فاسقان | او نه دي منع کړی دوئ | چي قبول کړي شي |

ستاسو نه قبول نشي ځکه چه تاسو نافرمان خلق ئي او دوی چه د دي خبري نه منع شوی دی چه د دوی

| وَبِرَسُولِهِ | بِاللّٰهِ | كَفَرُوْا | اَنَّهُمْ | اِلَّآ | نَفَقٰتُهُمْ | مِنْهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او په رسول دهغه | په الله | کافران شوي دي | چې دوئ | مګر دې خبرې | خرچ شوې مال ددوئ | ددوئ نه |
| صدقې د دوی نه قبول شی مګرد دې وجې چه دوی په الله او دهغه په رسول باندې کفر کړې دې | | | | | | |

| اِلَّا | وَلَا يُنْفِقُوْنَ | كُسَالٰى | وَهُمْ | اِلَّا | الصَّلٰوةَ | وَلَا يَاْتُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| امګر | اونهٔ خرچ کوی دوئ | سست وی | چې دوئ | احال دا | مګر | مانځه ته | اونه راځی دوئ |
| او دوی مانځه ته په ناراستيا سره راځی \| اودوی (چه دالله په لارکښې کوم) خرچ کوی نو په هغې | | | | | | |

| كٰرِهُوْنَ۝ | وَهُمْ |
|---|---|
| ناخوښه وی | په دې حال چې دوئ |
| باندې هم خفه وی | |

**قوله تعالى: قُلْ هَلْ تَرَبَّصُوْنَ بِنَآ اِلَّآ اِحْدَى الْحُسْنَيَيْنِ ط**

**د جهاد هم دوه انجامه دي:** دمسلمانانو په جهاد کښې هم دوه انجامه وی اودواړه د هرقسم نه ښه دی. که شهادت ملاؤشو نوجنت خپل دې اوکه فتح ملاؤشوه نو غنيمت او اجر دې. نو اې منافقانو! دا تاسو چه زمونږ باره کښې انتظارکوئې هغه هم د دې دوو ښيګړو نه یوه ده او مونږ چه په کوم بابت کښې ستاسو انتظارکووهغه د دوو بدونه يوه ده يعنې ياخودا چه دالله ﷻ عذاب به په تاسو نيغ په نيغه راشی او يازمونږ د لاسه به وهلې کيږئ قتل کيږئ او قيد کيږئ. ښه ده اوس به مونږ په خپل ځائ او تاسو په خپل ځائ انتظار کوئ ګورو به چه دغيب د پردې نه به څه ښکاره کيږی. ستاسو د خرچ کولو الله ﷻ اوړې نه دې که تاسو په خوشحالئ سره ورکړئ نو ښه ده ګنې که په خفګان مو ورکړه نو هغه خو هسې هم نه قبليږی ځکه چه تاسو فاسقان خلق ئې.

**منافق هر نيک کارکښې سست پست وی:** ستاسو د خرچ نه قبليدل هم ستاسو داکفر دې اود اعمالو دقبليدو شرط کفر نه بلکه د ايمان کيدل دی. ورسره ستاسو په يونيک کارکښې اراده او رښتونې همت نشته که مانځه ته راځئ هم خو په مات زړه پريوځئ راپريوځئ اوچتيږئ راځلاصيږئ سست پست په کتونکې مجمع کښې که دوه څلورسجدې ورکړئ هم نوبه مرزړه اوتنګ زړه سره. صادق او مصدوق حضرت محمدرسول اللهﷺ فرمائی الله ﷻ نه ستړې کيږی ترکومې چه تاسو نه ئې ستړی(١) الله ﷻ پاک دې اوپاک څيزخوښوی(٢) دمتقيانو اعمال قبلوی تاسوفاسقان ئې اوستاسواعمال دقبليدونه پريوتلې دی

| يُرِيْدُ اللّٰهُ | اِنَّمَا | اَوْلَادُهُمْ ط | وَلَآ | اَمْوَالُهُمْ | فَلَا تُعْجِبْكَ |
|---|---|---|---|---|---|
| غواړی الله | بيشکه | اونهٔ ديراولاد ددوئ | | مالونه ددوئ | نوپه تعجب کښې دې نهٔ اچوی تا |
| نو د دوی مالونه او اولاد دې تا په تعجب کښې وانچوی بيشکه الله اراده لری چه دې منافقانو ته | | | | | |

| وَهُمْ كٰفِرُوْنَ۝ | اَنْفُسُهُمْ | وَتَزْهَقَ | فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا | بِهَا | لِيُعَذِّبَهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوحال داچې دوئ کافران وی | روحونه ددوئ | اواوځی | په ژوند ددنيا کښې | په دې څيزونوسره | چې اوعذابوی دوئ |
| د دې مالونو په سبب په دنيا کښې عذاب ورکړی او په حالت د کفر کښې د دوی ساه اوځی | | | | | |

---

١) صحيح بخاری کتاب الايمان باب احب الدين الى الله ادومه: ٤٣، صحيح مسلم: ٧٨٢.

٢) صحيح بخاری کتاب الزکاة باب الصدقة من الکسب الطيب: ١٤١٠، صحيح مسلم: ١٠١٥.

قوله تعالى:: فَلَا تُعْجِبْكَ أَمْوَالُهُمْ

**دنیاداروته په لالچی نظرونوسره مه ګورئ:-** دهغوی مال اولادته په لالچی نظرونوسره مه ګورئ. د هغوی ددې دنیا په غلطه طریقه د ګټلو هیڅ حقیقت نشته نه شمیر د دوی په حق کښې څه ښه څیز دې دا خود هغوی دپاره دنیاوی سزا هم ده چه نه د دې نه زکوة اوخی اونه د الله ﷻ په نوم خیرات. قتاده رحمه الله فرمانی چه دلته مطلب مقدم او موخر دې یعنی تاسو ته دې د هغوی مالونه او اولاد ښه ښکاره نه شی ځکه چه د الله ﷻ اراده دې سره هغوی ته هم د دنیا په دې ژوندکښې سزا ورکول دی. اولنې قوم د حسن بصری رحمه الله دې هم هغه ښه او قوی دې. امام ابن جریر رحمه الله هم دا خوښوی. په دې کښې به دوی داسې انختې وی چه ترمرګه پورې به ورته د هدایت لار نه نصیب کیږی. او هم داسې به درجه په درجه رانیولې کیږی او هغوی ته به پته هم نه وی هم دغه شان شوکت مال او دولت به د دوزخ اور جوړیږی.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّهُمْ | بِاللهِ | وَيَحْلِفُونَ | | | |
| اوقسمونه خوری دوئ ا په الله باندې ا چی بیشکه دوئ | | | | | |
| ا اودوی (تاسو ته په دروغه) په الله ﷻ باندې قسمونه خوری چه دوی (منافقان) هم | | | | | |
| يَفْرَقُونَ۞ | قَوْمٌ | وَلَكِنَّهُمْ | مِّنكُمْ | هُمْ | وَمَا | لَمِنكُمْ |
| خامخاستاسونه دی ا وحال داچی نه دی ا دوئ ا تاسونه ا اولیکن دوئ ا داسې قوم دی ا چی بیریږی | | | | | |
| ستاسوځنې دی ا (خو) دوی ستاسو (مسلمانانو) نه نه دی ابلکه دوی داسې خلق دی چه ویریږی | | | | | |
| إِلَيْهِ | لَوَلَّوْا | أَوْ مُدَّخَلًا | أَوْ مَغَارَاتٍ | مَلْجَأً | لَوْ يَجِدُونَ |
| که موندلې دوئ ا ځائې دپناه ا یا غارونه ا یابل ځائې دننوتلو انوخامخا به ګرځیدلی وو ا هغې ته | | | | | |
| که دوی ځائې د پناه یا غارونه یا بل څه د دننولو ځائې موندلې نوخامخا به هغې ته په منډو ورغلې او | | | | | |
| وَهُمْ يَجْمَحُونَ۞ | | | | | |
| اودوئ ا به منډې وهلې ا | | | | | |
| ننوتی وو ا | | | | | |

قوله تعالى:: وَيَحْلِفُونَ بِاللهِ إِنَّهُمْ لَمِنكُمْ

**د منافقانو غیرمستقل مزاجی اود دروغوقسمونه:** د هغوی د زړه تنګوالی غیرمستقل مزاجی غم خفګان ویرې اوبې اطمینانتی دا حال دې چه هم تاسو له راځی اود ستاسو په زړه کښې دځائ کولود پاره هم ستاسود لاسه د بچ کیدلودپاره اوږده اوږده قسمونه خوری چه والله مونږ هم ستاسویو مونږ مسلمانان یواوحقیقت د دې نه خلاف وی داخو صرف ویره او خوف دې کوم چه د هغوی په خیټه کښې درد پیدا کوی. که هم نن هغوی ته دخپل بچاؤ چرته یوه قلعه ملاؤشی اوکه هم دوی چرته یو محفوظ غار اووینی یادوی ته د یوښه سرنګ پته اولګی نو دوی به ټول په ټول په یو ساعت کښې د هغې طرف ته وروالوزی تاسره به دوی یو هم نه ښکاری ځکه چه د دوی خو څه تاسره مینه او محبت نشته دوی خو صرف د ضرورت مجبورئی او ویرې د وجې ستاسو چاپلوسی کوی. هم دا وجه ده چه څنګه څنګه اسلام ترقی کوی دوی مره کیږی. د مؤمنانو په هره خوشحالئی سوزی او ترقیږی. د دوی ترقی دغه منافقان یو نظر نه شی لیدلې، که موقعه ورته ملاؤشوه نو هم نن به اوتختی.

وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّلْمِزُكَ فِي الصَّدَقٰتِ
او ځيني د دوئ نه | هغه څوك دى | اچې عيب لگوي په تا | په صدقو كښې
او په دوى (منافقانو) كښې څه داسې (منافقان) دي چه د صدقو په باره كښې په تا باندې عيب لگوى

فَإِنْ أُعْطُوا مِنْهَا رَضُوا وَإِنْ لَّمْ يُعْطَوْا مِنْهَآ إِذَا
نوكه اوركړې شي دوى ته | دهغې نه | انو راضي كيږي | اوكه ورنكړې شي دوئ ته | ادهغې نه | انو په دغه وخت
او د دوى حال دا دې كه د هغې نه ورته څه وركړې شي نو بيا خو خوشحاله وى او كه څه ورته ورنكړې شي نو په

هُمْ يَسْخَطُونَ﴿٥٨﴾ وَلَوْ أَنَّهُمْ رَضُوا مَآ آتٰهُمُ اللّٰهُ
دوئ | اغصه كيږي | اوكه چرې دوئ | راضي شوې وې | په هغه | اچې وركړې وو دوئ ته | الله
هغه وخت كښې بيا په غصه وى (چه ولې ئې ماته څه رانكړل) خوكه دوى په هغه څه راضي شوې وې كوم چه

وَرَسُولُهٗ وَقَالُوا حَسْبُنَا اللّٰهُ سَيُؤْتِينَا اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ
اورسول دهغه | اووئيلي ئې وې | اكافي دې مونږ لره الله | ارابه كړى مونږ ته الله | ادفضل خپل نه | او
الله او دهغه رسول وركړې وې اودا ئې وئيلي وو چه الله زمونږ زمونږ دپاره كافي دې الله او دهغه رسول

وَرَسُولُهٗٓ إِنَّآ إِلَى اللّٰهِ رٰغِبُونَ﴿٥٩﴾
رسول دهغه | ابيشكه مونږ | االله ته | رغبت كونكي يو |
به مونږ ته د خپل فضل (مال) نه راكړى او مونږ الله ته رغبت كونكي يو

قوله تعالى: فَإِنْ أُعْطُوا مِنْهَا رَضُوا

**دمال اودولت حرصناك منافقان:** بعضې منافقان په حضورﷺ باندې تهمت لگوى چه حضورﷺ د زكوة مال صحيح نه تقسيم كوى وغيره. اود دې نه د هغوى اراده صرف د خپلې نفع نه بل هيڅ نه وى. كه دوى ته څه ملاوشى نوراضى دى اوكه دوى پاتې شى نوبس سپيرمې پرسولې وى. رسول اللهﷺ چه كله دزكوة مال اخوا ديخوا تقسيم كړو نو په انصاروكښې چا اووئيل چه داخو انصاف نه دې په دې خبره دا آيت نازل شو.

**د نبى په كارباندې اعتراض كونكى دنيا او اخرت تباه دى:** اوپه روايت كښې دى چه يو نوې صحرائى رسول اللهﷺ سره زر اوسپين تقسيم كونكې اوليده نو ونيل چه الله ﷻ تاته د عدل حكم دركړو نو ته خو عدل نه كوې. حضورﷺ اوفرمائيل چه ته خو تباه شوې چه زه هم عدل نه كوم نو په زمكه به څوك عدل كونكې وى؟ بيا حضورﷺ اوفرمائيل ده نه اود ده په شان نورو نه بچ اوسيږئ. زما په امت كښې دا قسمه خلق وى چه هغوى به قرآن پاك لولې خود حلق نه به ئې لاندې نه كوزيږى. اوچه هغوى كله راځي نوقتل ئې كړئ كه بيا راوځي نو مره ئې كړئ او چه بيا ښكاره شى نو ستونه ترې اووهئ. د الله ﷻ قسم چه زه به نه تاسو ته دركوم اونه به تاسو نه منع كوم زه خو يو خازن يم[1] دجنگ حنين د مال غنيمت دتقسيم په وخت كښې ذوالخويصره حرقوص نوم يوسړى په حضورﷺ باندې اعتراض كړې وو او وئيلي وو ته عدل نه كوې په انصاف سره كار كوه. حضورﷺ اوفرمائيل چه زه هم عدل اونه كړم نو بيا ستا بربادى چرته هم تلې نه شى. كله چه هغه شاكره نو رسول اللهﷺ مبارك اوفرمائيل چه د ده نه به

[1] الطبرى: ۱۴/۳۰۲.

يوقوم پيدا كيږي دهغوي دمونځونو په مقابله كښې به تاسو ته خپل مونځونه حقير ښكاري اودهغوي د روژو مقابله كښې به تاسو كښې يو يو ته خپله روژه حقير معلوميږي خو هغوي به د دين نه داسې اوځي لكه غشې د ښكار نه. هغوي چه تاسو ته چرته هم ملاوشي دهغوي په قتل كښې كمې مه كوئ. د آسمان د لاندې د دې قتل شوو نه ډير خراب قتل شوي به نور نه وي. (١)

**درسول كريم ﷺ په وركړې شوې څيز باندې قناعت كول پكار دي:** بيا ارشاد دې چه دوى ته د رسول الله ﷺ په لاس الله ﷻ دوى ته وركړي وو كه دوى په هغې باندې قناعت صبر اوشكر كولو او وئيلې چه الله ﷻ مونږ له كافي دې هغه به په خپل فضل سره د خپل رسول الله ﷺ په لاس نور هم مونږ ته راكړي. زمونږ اميدونه پروردگار سره تړلي دي نودابه د هغوي په حق كښې بهتر وه. نو په دې كښې د الله ﷻ تعليم دې چه دوى ته الله ﷻ څه وركړي نو په هغې باندې انسان له صبر اوشكر كول پكار دي. توكل دې په واحد ذات باندې ساتي هم هغه دې كافي او وافي ګڼړي رغبت توجو او لالچ اميد او طمع هم د هغه پاك ذات نه ساتي. د رسول كريم عليه افضل الصلوة والتسليم په اطاعت كښې څه فرق اونه كړي اود الله ﷻ نه توفيق غواړي چه كوم احكام وي هغه په ځاي راوړي اوكوم چه د منع كيدو كار وي هغه پريږدي او چه كومې خبرې وي هغه اومني اود صحيح اطاعت كولو هغه لارخودنه اوكړي.

| إِنَّمَا الصَّدَقَٰتُ لِلْفُقَرَآءِ |
|---|
| بيشكه صدقې ا دې دپاره دفقيرانو ا |
| ابيشكه زكاتونه د فقيرانو |
| وَالْمَسَٰكِينِ وَالْعَٰمِلِينَ عَلَيْهَا وَالْمُؤَلَّفَةِ |
| اودپاره دمسكينانو ا اودپاره دعاملانو اچې مقرروي په هغې باندې ا او دپاره دهغه كسانوچې الفت اچول غرض وي |
| مسكينانو اود زكاة راغونډونكو دپاره دي اودهغه (نوي مسلمانانو) دپاره چه د هغوي زړونو كښې د اسلام |
| قُلُوبُهُمْ وَفِي الرِّقَابِ وَالْغَٰرِمِينَ وَفِي سَبِيلِ اللَّهِ |
| زړونودهغوئ ته ا اوپه څټونوآزادولوكښې وركولې شي ا اوقرضدارانوته وركولې شي ا اوپه لارد الله كښې وركولې شي |
| محبت اچول مقصود وي ا اودغلامانو آزادولو دپاره اود قرضدارو دپاره اود مجاهدينو دپاره |
| وَابْنِ السَّبِيلِ ۖ فَرِيضَةً مِّنَ اللَّهِ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ۝ |
| اومسافرانوته وركولې شي ا دافريضه ده ا دطرفه دالله نه ا اوالله په هر څه پوهه دې ا دحكمت خاوند دې |
| اود مسافرو دپاره دې ادا زكاة د الله ﷻ فرض حكم دې او الله ﷻ پوهه اوصاحب دحكمت دې |

قوله تعالى: إِنَّمَا الصَّدَقَٰتُ لِلْفُقَرَآءِ وَالْمَسَٰكِينِ

**دزكوة دمصارفوتفصيل اووضاحت:** په پورتني آيت كښې د دې جاهلو منافقانو ذكر وو كومو چه د رسول الله ﷺ د صدقاتو په تقسيم نې اعتراض كړې وو. اوس نې دلته په دې آيت كښې بيان اوفرمائيلو چه د زكوة تقسيم د پيغمبر ﷺ په مرضئ باندې موقوف نه دې بلكه زمونږ په خودلې شوو مصارفو كښې لګي مونږ پخپله د دې تقسيم كړې دې بل چاه ته دې حواله كړي. په ابوداؤد كښې دې زياد بن حارث صدائي ﷺ فرمائي زه دسركار نبوت ﷺ په خدمت كښې حاضر شوم اودحضور ﷺ په لاس مې بيعت اوكړو يوسړي راغلو اودحضور ﷺ نه نې سوال اوكړو چه ماته په صدقه كښې څه راكړه. حضور ﷺ اوفرمائيل

(١) صحيح بخاري كتاب المناقب باب علامات النبوة في الاسلام: ٣٦١٠، صحيح مسلم: ١٠٦٤، احمد: ٥٦/٣ مختصرًا.

الله ﷺ نبی اوغیر نبی د چا په حکم باندې د چادتقسیم د زکوة باره کښې راضي نه شو تردې چه پخپله هغه تقسیم اوکړو.اته مصارف ئې مقررکړه. که ته په هغې کښې د یو نه ئې نو زه به تاته درکړم.(۱)

**په معارف زکوة کښې دعلماء کرامو اقوال:** امام شافعي رحمه الله خو فرمائي چه د زکوة د مال تقسیمول په دې اته قسمه خلقو باندې واجب دي اود امام مالک رحمه الله وغیره قول دې چه واجب نه دې بلکه هم په دې کښې یوته هم ورکول کافي دی سره د دې چه نور قسم خلق وی. د عام اهل علم قول هم دغه دې په آیت کښې بیان مصرف دې نه چه دې ټولوته د ورکولو د وجوب ذکر دې.

**د زکاة مال په مصارفو کښې ټولو ته هم ورکولې شی او صرف یو ته هم**

**مسلک حنفي:-** داحنافو په نیز باندې هم د زکاة مال ورکولو کښې اختیار دې که ټولو ته ئې ورکوی اوکه په دې اته قسمه مصافو کښې یو ته ورکوی دواړه صورتونه جائز دی (۲)

فقیرانوته د ټولونه اول ورکول ځکه بیان دې چه د دوی ډیر سخت حاجت دې. سره د دې چه د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیزمسکین د فقیر نه هم په خراب حال کښې دې. حضرت عمر رضی الله عنه فرمائي د چا په لاس کښې مال نه وی. هم هغه ته فقیرنه وائی بلکه فقیر داهم دې کوم چه محتاج وی او پریوتلې وی سره د دې چه څه خوراک څښاک او کټه هم وی. ابن علیه وائی په دې روایت کښې د أَخْلَقُ لفظ دې. خلق وائي زمونږ په نیز تجارت ته خوجمهورد دې خلاف دی.او ډیر حضرات فرمائي فقیر هغه دې کوم چه د سوال نه بچ کیدونکې وی او مسکین هغه دې کوم چه سوال کونکې وی خلقو پسې لګیدونکې وی او په کورونو کښې او په کوڅوکښې ګرځیدونکې(۳) قتاده رحمه الله فرمائي فقیر هغه دې کوم چه د بیمارئي والا وی اومسکین هغه دې کوم چه صحیح سالم بدن والا وی(۴)ابراهیم رحمه الله وائی دې نه مراد مهاجر فقیران دی. سفیان ثوری رحمه الله وائی کلي والوته دې د دې نه هیڅ هم نه شی ورکولې . عکرمه رحمه الله وائی مسلمان فقیران ته مساکین مه وائې مسکین خو صرف اهل کتاب خلق دی.

**فقیرد امام ابوحنیفه رحمه الله په مذهب کښې**

**مسلک حنفي:** ①دامام ابوحنیفه رحمه الله نه نقل دی.چه فقیر هغه کس دې.چه دهغه سره څه وی.خود نصاب نه کم وی.یادنصاب په اندازه وی.خونصاب غیرنامی وی.اودې پخپلوضروریاتوکښې اینختې وی. او مسکین هغه کس دې.چه دهغه سره قطعاً هیڅ څیزهم نه وی.نه دده سره نان شبینه(د شپې خوراک) وی. او نه د بدن پټولودپاره څه کپړه وی.ګویا د امام صاحب رحمه الله په نیزمسکین زیات د غربت په حال کښې وی.په نسبت د فقیر(۵) اوس هغه احادیث واورئی کوم چه د دې اتوقسمو متعلق دې.

**اول فقراء ::** فقراء حضور ﷺ فرمائي صدقه په مالدار او روغ سړی باندې حلال نه ده(۶) دووکسانو د حضور ﷺ نه د صدقه مال اوغوښتلو حضور ﷺ په غور سره د لاندې نه پورته بنه تندرست قوی کټلو سره اوفرمائیل که تاسو غواړئی نو زه به تاسو له درکړم خو چه مالدار سړی او طاقتوراو ګټندویه سړی وی په دې کښې د هغوی حصه نشته. (۷)

---

(۱) ابوداوٗد کتاب الزکاة باب من یعطی من الصدقة وحد الغنی: ۱۶۳۰.

(۲) رکذا فی عامة المتون شاه فیصل غفرله).

(۳) الطبری: ۱۴/۳۰۵.

(۴) ایضاً: ۱۴/۳۰۶.

(۵) رسهیل الهدایه شرح هدایه تالیف احقرالعباد شاه فیصل رجلد ۲ باب مصارف الزکاة).

(۶) ابوداوٗد کتاب الزکاة باب من یعطی من الصدقة وحد الغنی: ۱۶۳۴وسنده حسن، ترمذی: ۶۵۲، احمد: ۲/۱۶۴، دارمی: ۱/۳۸۶، حاکم: ۱/۴۰۷.

(۷) ابو داوٗدحواله سابقه: ۱۶۳۳وسنده صحیح، نسائی: ۲۵۹۹.

**دویم مساکین::** حضورﷺ فرمانی مسکینان دغه رخیدونکی یوه یوه دوه دوه نوړنی یوه کهجوره دوه کهجورې اخستلو سره تلونکی ته نه وانی. خلقو تپوس اوکړو یا رسول اللهﷺ! بیا مسکینان کوم خلق دی؟ حضورﷺ اوفرمانیل څوک چه د بې پرواهئی برابر اونه مومی اونه خپل داسې حالت اوساتی چه څوک ئې اووینی وئې پیژنی اوچه څه ورکړې هغوی د چانه پخپله سوال نه کوی. (۱)

**دریم عاملین::** صدقه وصول کونکی دا تحصیل دار دی دوی ته به اجرت هم د دې مال نه ملاویږی. د حضورﷺ خپلوان په چا چه صدقه حرام ده په دې عهده باندې نه شی راتلې. عبدالمطلب بن ربیعه بن حارث او فضل بن عباسؓ رسول اللهﷺ له دا درخواست یوړو چه مونږ د صدقې راټولونکی عامل جوړکړنی. حضورﷺ جواب ورکړو چه په محمد او آل محمدﷺ باندې صدقه حرام ده او دا خو د خلقو خیرې دې. (۲)

**څلورم مؤلفة القلوب::** دچا زړه چې راړول مقصود وی د هغوی ډیر قسمونه دی، بعضو ته خو په دې وجه ورکولې شی چه هغوی اسلام قبول کړی لکه څنګه چه حضور اکرمﷺ صفوان بن امیه ته غنیمت د حنین مال ورکړې وو حالانکه هغه دغه وخت د کفر په حالت کښې حضورﷺ سره وتلې وو(۳)ددې خپل بیان دې چه درسول کریم ﷺ دې داد او دهش زما په زړه کښې د حضورﷺ د ټولونه زیات محبت پیدا کړل سره د دې چه د ټولونه اول زه د حضورﷺ لوئی دښمن ووم. بعضو ته خکه ورکولې شی چه د هغوی اسلام مضبوط شی اود هغوی زړه په اسلام باندې اولګی لکه چه حضورﷺ د حنین په ورځ د مکې آزاد کړې شوې د خلقو سردارانوته سل سل اوښان ورکړل(۴) او ارشاد ئې اوفرمانیل چه زه یو ته ورکوم او حال دا وی چه د ده نه ډیر زما محبوب دې هغه نه ورکوم په دې ویره چه داسې نه چه دوی پرمخې دوزخ ته پریوځی(۵)یوخل حضرت علیؓ دیمن نه کچه سره زرد خاورو سره دحضورﷺ په خدمت کښې راولیګله نو حضورﷺ صرف په څلورو کسانو کښې تقسیم کړو. اقرع بن حابس، عینیه بن بدر، علقمه بن علاثه او زیدخیر، او وئې فرمانیل چه زه د دوی د زړه ساتنې د پاره ورکوم(۶)بعضو ته په دې وجه ورکولې شی چه ددوی په شان نورخلق هم اسلام قبول کړی.اوبعضو ته خکه ورکولې شی چه هغوی د خپل خواوشا نه صدقه اورسوی اویادخواوشا دښمنانوساتنه اوکړی اوهغوی ته په مسلمانانوباندې د حملې موقع ورنه کړی.ددې ټولود تفصیل ځائ احکام اودفروع کتابونه دی نه چه دا تفسیر. والله اعلم.

**دمؤلفة القلوب والا حصه اوس هم پاتې ده کنه؟::** حضرت عمرؓ او عامر شعبیؒ اود یوې ډلې قول دې چه د حضورﷺ د وصال نه پس اوس دا مصرف باقی پاتې نه شو خکه چه الله ﷻ اسلام ته عزت ورکړې دې اود مسلمانانو ملکونو مالکان جوړشو اوډیر زیات بندیګان د رب د هغوی ماتحت دی. خود نورو بزرګانو قول دې چه اوس هم مولفة قلوب ته زکوة ورکول جائز دی. د مکې د فتح او د هوازن د فتح نه پس هم حضور علیه الصلوة والتسلیم هغه خلقو ته مال ورکړو. بل دا چه اوس هم داسې ضرورتونه پیښیږی.

---

(۱) صحیح بخاری کتاب الزکاة باب قول الله عزوجل ﴿لایسألون الناس الحافا﴾ :۱٤۷۹، صحیح مسلم:۱۰۳۹.

(۲) صحیح مسلم کتاب الزکاة باب ترک استعمال آل النبی علی الصلوة: ۱۰۷۲، ابوداوٗد:۲۹۸۵، بیهقی:۳۱/۷،احمد: ١٦٦/٤.

(۳) صحیح مسلم کتاب فضائل باب فی سخائهﷺ:۲۳۱۳، ترمذی:۶۶۶احمد:۴۰۱/۳.

(۴) صحیح بخاری کتاب الزکاة باب ماکان النبیﷺ یعطی المولفة قلوبهم وغیرهم.....:۳۱٤۷، صحیح مسم: ۱۰۵۹.

(۵) صحیح بخاری کتاب الزکاة باب قول الله ﴿لایسألون الناس الحافا﴾ :۱٤۷۸، صحیح مسلم:٤۶۸۳.

(۶) صحیح بخاری کتاب المناقب باب علامات النبوة فی الاسلام:۳۶۱۰، صحیح مسلم:۱۰۶٤، ابوداوٗد: ٤۷۶٤.

## د مؤلفة القلوب حصه ساقطه شوې ده

**مسلک حنفي:-** د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د مولفة القلوب حصه ساقطه شوې ده ځکه چې الله ﷻ اوس اسلام ته غلبه او عزت ورکړې دې نوکه یو کس نوې مسلمان شی هغه ته به زکاة په دې وجه نشی ورکولې چې د زکاة په مصارفو کښې دې البته که هغه د زکاة په نورو اووه قسمه مستحقینو کښې وی نو بالکل ورته زکاة ورکول جائز دی (تفسیر مظهری ۴/ ۲۱۳)-

**پنځم د مرئی ازادول:**:د مرئی د آزادئی باره کښې ډیر بزرګان فرمائی دې نه مراد هغه غلام دې کوم چه رقم مقررکولو سره د خپلو ملکونونه د په خپله آزادئی شرط کړې دې چه دوی ته د زکوة د مال نه پیسې ورکړنی اوادا کولو سره هغوی آزاد کړئی(۱) بل بزرګ فرمائی چه هغه غلام چا چه دا شرط نه وی لیکلې دا هم د زکوة په مال باندې واخلئی او په آزادولو کښې هیڅ ویره نشته. غرض مکاتب غلام او صرف غلام د دواړو آزادی د زکوة مصرف یو دی.

## صرف مکاتب غلام ته زکاة ورکولې شی

**مسلک حنفي:-** د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د رقاب نه مراد مکاتب دې یعنی هغه غلام چه د خپل مالک سره ئې کتابت کړې وی چه زه تاته دومره روپۍ درکړم نو زه به آزاد یم او مالک ورسره په دې باندې عقد کړې وی اوس دغه مکاتب خپل مالک ته بدل کتابت ادا کړې نه دې نو مزکی ته پکار دی چې دغه غلام ته زکاة ورکړی چې هغه پرې خپل ځان آزاد کړی اوکه یو کس صرف غلام وی مکاتب نه وی نو هغه ته زکاة نشی ورکولې (۲)

**د غلام د ازادولوفضیلت ::** په احادیثوکښې هم د دې ډیر فضیلت وارد شوې دې. اوتردې فرمائیلی دی چه د آزاد کړې شوی غلام د هرهر اندام بدله کښې د آزادونکی هر هر اندم د دوزخ نه آزادیږی او تردې چه د شرمګاه په بدله کښې شرمګاه هم. ځکه چه د هرې نیکئی بدله هم دا شان وی. قرآن پاک فرمائی تاته به هغه بدله درکولې شی کوم چه تا کړې وی. په حدیث شریف کښې دی د درې قسمه خلقوامداد د الله ﷻ په ذمه حق دې. هغه غازی ځوك چه د الله ﷻ په لار کښې جهاد کوی. هغه مکاتب غلام او قرضدار ځوك چه د ادا کولو نیت لری. هغه نکاح کونکې چه د کوم اراده د بدکارئی نه محفوظ کیدل وی(۳) چاحضور ﷺ ته اوونیل چه ماته څه داسې عمل اوښایه چه ما جنت ته نیزدې او دوزخ نه لرې کړی. حضور ﷺ اوفرمائیل نسمه آزاد کره او مرئی خلاصې اوکړه. هغه اوونیل چه آیا دادواړه یوشئ نه دې. حضور ﷺ اوفرمائیل چه نه د نسمه آزادی خودې ته وائی چه ته یوازې یو غلام آزاد کړې او مرئی خلاصول دا دی چه ته په هغې کښې امداد اوکړې کوم چه تانه کیدې شی. (۴)

**شپږم قرضدارو ته ورکول:**:د قرضدارانو هم ډیر قسمونه دی چه یو سړې د بل بوج اوچت کړی چه د چا د قرض ته ضامن جوړشې بیا د هغه مال ختم شی او یا هغه پخپله قرضداري شی او یا چا په بدنی باندې قرض اوچت کړې وی او اوس هغه توبه اوکړی نو ده ته به د زکوة مال ورکولې شی چه دې قرض اداکړې شی.ددې مسئلې اصل قبیصه رضی الله عنه بن مخارق هلالی دا روایت دې چه ما د بل حواله خپل طرف

---

۱) الطبری: ۱۴/ ۳۱۷.

۲) (تفسیر مظهری (۴/ ۲۱۳)..

۳) ترمذی کتاب فضائل الجهاد باب ماجاء فی المجاهد والناکح...: ۱۶۵۵، وسنده حسن، نسائی: ۳۲۲۰، ابن ماجه: ۲۵۱۸، احمد: ۲/ ۲۵۱، ابن حبان: ۴۰۳۰، حاکم: ۲/ ۱۶۰.

۴) احمد: ۴/ ۲۹۹، وسنده صحیح، مسند الطیالسی: ۷۳۹، بیهقی: ۱۰/ ۲۷۲، ابن حبان: ۳۷۴، مجمع الزوائد: ۴/ ۲۴۰.

ته اخستې وه بیا زه دحضورﷺ په خدمت کښې حاضر شوم نو حضورﷺ اوفرمائیل چه ته حصار شه مونږ له به د صدقې مال راشی نومونږ به تاته د هغې نه درکړو.

**د دریوکسانو دپاره سوال کول جائز دی ::** بیا فرمائی قبیصهؓ واوره د درې قسم خلقو سوال کول حلال دی. یو هغه چه څوك ضامن شی د هغه رقم پوره کیدلو پورې هغه ته سوال کول جائز دې بیا دې سوال نه کوی. دویم هغه کس د چا مال چه په څه ناګهانی آفت مصیبت کښې ضائع شی د هغه سوال کول هم صحیح دی تردې چه په خیټه موړشی. دریم هغه کس په چا چه ولږه تیریږی او د هغه د قوم درې کسان هوښیار کسان د هغه د ګواهئی د پاره اودریږی چه او په فلانکی سړی باندې ولږې تیریږی. هغه له هم غوښتل جائز دی ترهغه وخته پورې چه د هغه ګذاره اوشی اود ژوند سامان نی پیداشی. د دوی نه علاوه د نورو خلقو سوال کول حرام دی.که هغوی سوال کوی اوغواړی اوخوری نوحرام خوری.([1]) یو سړی په نبوی زمانه کښې یو باغ واخستو د الله ﷻ په قدرت سره آسمانی افت د هغه باغ میوه اووهله په دې سره هغه ډیر قرضدارې شو. حضورﷺ دهغه قرض خواهانوته اوفرمائیل چه دې څه درکړی واخلئی دې نه علاوه ستاسو د پاره هیڅ نشته. ([2])

**د مجبور قرضداری قرض به الله ﷻ ادا کوی::** حضورﷺ فرمائیل چه د قیامت په ورځ به الله ﷻ یو قرضدار راولی او خپلې مخې ته به نی اودروی او تپوس به ترې اوکړی چه تاولې قرض اخستو او ولې دې پیسې ضائع کړې؟ په څه سره چه د خلقو حقونه برباد شو. هغه به جواب ورکړی اې الله تعالی! تاته ښه معلومه ده چه ما دغه پیسې په خوراك څښاك کښې نه دی الوزولې بلکه زما نه خو غلاشوې یا اُور اولګیدو اویا څه بل څه آفت راغلو.الله ﷻ به اوفرمائی زما بنده رښتونې دې اونن ستاد قرض ادا کولو د ټولونه زه ډیرزیات حقدار یم. بیا به الله ﷻ څه څیز راوغواړی اود هغه د نیکو په تله کښې به نی کیږدی په څه سره چه به نیکئی دبدونه زیاتې شی او الله ﷻ به هغه پخپل فضل سره جنت ته بوځی ([3])

**اووم غازیانوته ورکول، حاجی اومسافر هم په کښې داخل دی ::** د الله ﷻ په لار کښې هغه مجاهدین غازیان داخل دی د چا چه په دفتر کښې هیڅ حق نشته. حج هم د الله ﷻ په لارکښې داخل دې

**اتم ابن سبیل ته ورکول::** مسافر چه په سفرکښې بې یارومددګار پاتې شوې وی نو هغه له هم د زکوة د مال نه دومره رقم ورکړئی په کوم سره چه هغه خپل ښارته اورسی سره د دې که هغه به خپل ځائ کښې مالداری وی. دا حکم د هغه د پاره هم دې چه د خپل ښار نه د سفر اراده کړې وی خو مال ورسره نه وی نو هغه ته هم د د سفر د خرچ د پاره د زکوة د رقم نه ورکول جائز دی چه دهغه د تلوراتلو دپاره کافی وی.د آیت د دې لفظ د دلیل نه علاوه د ابوداؤد وغیره دا حدیث هم د دې دلیل دې چه حضوراکرمﷺ فرمائیلی په مالداراباندې زکوة حرام دې بغیرد پنځه قسمه مالدارونه یوخو هغه چه د زکوة وصولولو باندې مقرردې. دویم هغه کس چه د زکوة مال نه څه څیز په خپل مال باندې واخلی. دریم قرضدار، څلورم د الله ﷻ د لارې مجاهد او غازی. پنځم چه یومسکین ته څه څیز چه په زکوة کښې ملاؤشوې وی. مالدارو ته هدیه ورکړی ([4]) او په روایت کښې دی چه زکوة د مالدار د پاره حلال نه دې خو چه څوك د الله ﷻ په لارکښې وی یا په مسافرئی کښې وی اویا چه هغه ته خپل یو مسکین ګاونډی څه څیز په تحفه کښې ورکړی یا خپل کورته نی راوغواړی. ([5])

---

[1]) صحیح مسلم کتاب الزکاة باب ومن لاتحل له المسئلة: ۱۰٤٤، ابوداؤد: ۱٦٤۰، ابن ابی شیبه: ۳/۲۱۰،

[2]) صحیح مسلم کتاب المساقاة باب استحباب الوضع من الدین: ۱۵۵٦، ابوداؤد: ۳٤٦۹، ترمذی: ٤۵۵، ابن ماجه: ۲۳۵٦، احمد: ۳/۳٦ (مسلم)

[3]) احمد: ۱/۱۹۷-۱۹۸، مسندالبزار: ۱۳۳۳. (مسنداحمد)

[4]) ابوداؤد کتاب الزکاة باب ومن یجوزله اخذالصدقة وهوغنی: ۱٦۳۵، وهوصحیح، ابن ماجه: ۱۸٤۱

[5]) ابوداؤد حواله سابقه: ۱٦۳۷، ابن ابی شیبه: ۳/۲۱۰، بیهقی: ۷/۲۳، احمد: ۳/۳۱

د زکوة دا اته واړه مصارف بیانولونه پس فرمائي چه دا د الله ﷻ د طرف نه فرض دي. یعنی مقتدرو د الله ﷻ تقدیر د هغې د تقسیم اود هغې فرض کولو سره. الله ﷻ د ظاهر او باطن عالم دي. د خپلو بندګانود مصلحتونونه خبر دي. هغه په خپل قول فعل شریعت اوپه حکم کښې حکمت والا دي. هغه نه بغیر څوک هم د عبادت لائق نه دي او نه د هغه بغیر څوک د چا پالونکې دي.

| وَمِنْهُمُ | الَّذِيْنَ | يُؤْذُوْنَ | النَّبِيَّ | وَيَقُوْلُوْنَ | هُوَ | اُذُنٌ ؕ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوخینې ددوئ نه | هغه کسان | چې تکلیف ورکوي | نبي ته | اووائي | چې دا | سرې اغوږونه دي |

اوبعضې په دوی کښې هغه کسان دي چه نبي ته تکلیف رسوي اودا وائي چه دې ډیر اوریدونکې دې

| قُلْ | اُذُنُ | خَيْرٍ | لَّكُمْ | يُؤْمِنُ | بِاللّٰهِ | وَيُؤْمِنُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اووایه | دا په غوږونوکچه والې | ابهتر دي | استاسو دپاره | ایمان لري | په الله باندې | اواعتماد کوي |

ته ورته اووایه په الله ﷻ باندې ایمان راوړي اوپه مؤمنانو باندې اعتماد کوي

| لِلْمُؤْمِنِيْنَ | وَرَحْمَةٌ | لِّلَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | مِنْكُمْ ؕ | وَالَّذِيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| په مومنانو | اورحمت دي | دپاره دهغه کسانو | چې ایمان ئې راوړې دي | ستاسو نه | اوهغه کسان |

...........اوپه تاسو کښې چه کومو کسانو ایمان راوړې دي دهغوی دپاره رحمت دي او کوم کسان

| يُؤْذُوْنَ | رَسُوْلَ اللّٰهِ | لَهُمْ | عَذَابٌ | اَلِيْمٌ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| چې تکلیف ورکوي | رسول دالله ته | دي دهغوئ دپاره | عذاب | دردناک |

چه دالله رسول ته تکلیف رسوي نو د هغوی دپاره دردناک عذاب دي

قوله تعالی: وَيَقُوْلُوْنَ هُوَ اُذُنٌ ؕ

د منافقانو فضول خبرې اودهغوی خبث او نفاق:- دمنافقانو یوه ډله ډیره موذي ده په خپلو خبرو باندې د الله ﷻ پیغمبر ﷺ ته تکلیف رسوي او وائي چه دانبي خودغوږونونه ډیرخام دي دچانه ئې چه څه واوریده وئې منل. کله چه مونږ هغه له خو اوقسمونه خورو نو هغه به زمونږ په خبرو هم یقین اوکړي الله تبارک وتعالی فرمائي هغه د ښوغوږونو والا دي او ښه اوریدونکې دي هغه صادق او کاذب ښه پیژني هغه د الله ﷻ خبرې مني اود ایماندارو خلقو صداقت هم پیژني هغه د مؤمنانود پاره رحمت دي اود بې ایمانه د پاره د الله ﷻ حجت دي. رسول الله ﷺ ته د تکلیف رسونکي د پاره د غم وهل دي.

| يَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ | لَكُمْ | لِيُرْضُوْكُمْ ۚ | وَاللّٰهُ | وَرَسُوْلُهٗ | اَحَقُّ | اَنْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قسمونه خوري داخلق په الله باند | تاسو ته | دپاره ددې چې راضي کړي تاسو | اوالله | اورسول دهغه | زیات حقدار | دي چې |

دوی تاسو ته په الله ﷻ باندې قسمونه خوري چه تاسو راضي کړي (خو) الله ﷻ اودهغه پیغمبر زیات حقدار دي چه دوی ئې

| يُّرْضُوْهُ | اِنْ كَانُوْا مُؤْمِنِيْنَ ۝ | اَلَمْ يَعْلَمُوْٓا | اَنَّهٗ | مَنْ |
|---|---|---|---|---|
| راضي کړي هغه | که وي هغوئ مومنان | ایا نه ده معلومه دوی ته | چې بیشکه شان دادې | چې هغه څوک |

راضي کړي اکه دوی مؤمنان وي ایا دوی (منافقان) په دې نه پوهیږي چه څوک د الله ﷻ اود هغه د رسول

| يُّحَادِدِ | اللّٰهَ | وَرَسُوْلَهٗ | فَاَنَّ | لَهٗ | نَارَ جَهَنَّمَ | خَالِدًا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې مخالفت کوي | دالله | اودرسول دهغه | نوبیشکه | مقرردې هغه لره | اوردوزخ | چې همیشه به وي |

مخالف کوي.. .... ...... ..........نو دده دپاره د جهنم اور دي چه همیشه به په هغې کښې وي

| فِيهَا ۚ ذٰلِكَ الْخِزْيُ الْعَظِيمُ ۝ |
| --- |
| په هغې کښې ا دا ا رسوائی ده الويه ا |
| اودا (جهنم ته داخليدل) لويه رسوائی ده ا |

قوله تعالى: يَحْلِفُونَ بِاللّٰهِ لَكُمْ لِيُرْضُوكُمْ

دمنافقانو بې ځايه قسمونه واقعه دا اوشوه چه دمنافقانونه يو سړی ونيل زمونږ سردار ډير عقل مند هوښيار اوتجربه کار دی. که د محمد ﷺ خبرې حق وې نو دوی دومره بې وقوفان چرته وو چه هغه به نی نه منلې. دا خبره يو رښتونی مسلمان صحابی رضی الله عنه واوريدله نو هغه اوونيل والله د محمد ﷺ ټولې خبرې رښتيادی اود نامنونکو بې وقوفتيا کښې هيڅ شك نشته. کله چه دا صحابی رضی الله عنه د رسول الله ﷺ دربارته اورسيدلو نو دا واقعه نی بيان کړه. حضور ﷺ هغه سړې راوغوښتو خو هغه سخت سخت قسمونه خوړل چه ماخودا خبره هډوکړې نه ده دې خو په مابانديې تهمت لګوی. دې صحابی رضی الله عنه دعا اوکړه چه پروردګاره ته رښتيا رښتيا کړې او دروغ دروغ. په دې باندې دا آيت نازل شو[1] آيا دوی ته دا خبره نه ده معلومه چه د الله ﷻ اورسول ﷺ مخالف ابدی دوزخيان دی او رسوائی عذاب او دوزخ برداشت کونکی دی. دې نه زياته بربادی دې نه زياته رسوائی اود دې نه لويه بدبختی به نوره څه وی.

| يَحْذَرُ الْمُنٰفِقُوْنَ اَنْ تُنَزَّلَ عَلَيْهِمْ |
| --- |
| ا يريږی منافقان ددی نه ا چی نازل کړې شی ا په مومنانو باند |
| ا منافقان د دې نه ويريږی چه (هسې نه) په مؤمنانو |
| سُوْرَةٌ تُنَبِّئُهُمْ بِمَا فِيْ قُلُوْبِهِمْ ۚ قُلِ اسْتَهْزِءُوْا ۚ |
| يوسورة ا چی خبرور کړی هغوئ ته ا دهغه ا چی په زړونو دهغوی کښی دې ا ورته اووايه ا چی کوئ توقې |
| باندې څه سورت نازل شی چه مسلمانانو ته دهغه رازونو خبر ورکړی کوم چه د دوی په زړونو کښې دی نه ورته اووايه |
| اِنَّ اللّٰهَ مُخْرِجٌ مَّا تَحْذَرُوْنَ ۝ |
| بيشکه الله ا ښکاره کوونکی دې ا دهغه څيز ا چی يريږئ تاسودښکاره کيدو دهغې نه ا |
| تاسو توقې کوئ ا بيشکه الله ﷻ د هغه څه ښکاره کونکې دې د کومې د ښکاره کيدو نه چه تاسو ويريږئ |

قوله تعالى: يَحْذَرُ الْمُنٰفِقُوْنَ

منافقانوته هروخت د خپل نفاق ويره وی:- خپل مينځ کښې به کيناستل او خبرې به نی غوټه کولې خو بيا به ويريدل چه هسې نه مسلمانانوته دوحی په ذريعه الله ﷻ خبرورنه کړی. او په بل آيت کښې دی چې کله هغوئ ستا خوا ته راشی نو داسې سلام درته کوی کوم چې الله ﷻ نه دې درکړې او پټ په زړه کښې وائی چه زمونږ په دې وينا باندې الله ﷻ مونږ ته سزا ولې رانه کړه. د هغوی د پاره د دوزخ پوره سزا پرته ده چه ډير خراب ځای دی.[2] دلته فرمائی چه په دينی خبرو اود مسلمانانو په حالت باندې ښه توقې اوکړئ الله ﷻ به هم هغه ښکاره کړی کوم چه ستاسو په زړه کښې دی. ياد ساتئ چه يوه ورځ به رسوا کيږئ. ارشاد دې چه دا بيمار زړه والا دې دا نه ګڼړی چه د هغوی د زړونو بدی به نه ښکاره کيږی. مونږ خو به د دوی دومره رسوائی اوکړو اوستاپه وړاندې به داسې ننېې کيږدو چه ته به د هغوی

---

[1] الطبری: ۳۲۹/۱۴،

[2] ۵۸/المجادلة.۸.

د لهجې نه هغوی پیژنې. (۱) د دې سورت نوم سورة الفاضحه دې په دې وجه چه دې د منافقانو رازونه ښکاره کړل. (۲)

| وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ | لَيَقُولُنَّ | إِنَّمَا | كُنَّا | نَخُوضُ | وَنَلْعَبُ ط |
|---|---|---|---|---|---|
| اوکه چرې تپوس اوکړې ته ددوئ نه | انو خامخا به وائی | اچې بیشکه | اوو مونږ | اچې مشغولیدو مونږ | اولوبې کولې مونږ |

اوکه ته د دوی نه تپوس اوکړې (چه تاسو داسې ولې وئیلې دی) نو دوی به وائی چه مونږ خو هسې ګپ شپ لګولو

| قُلْ | أَبِاللَّهِ | وَآيَاتِهِ | وَرَسُولِهِ | كُنْتُمْ | تَسْتَهْزِئُونَ ۞ |
|---|---|---|---|---|---|
| ورته اووایه | اایا په الله پورې | اوپه آیاتونو دهغه پورې | اوپه رسول دهغه پورې | اوئ تاسو | اچې توقې موکولې |

ته ورته اووایه ایا تاسو په الله تعالی او دهغه په آیاتونو او د هغه په رسول پورې توقې کوئ

| لَا تَعْتَذِرُوا | قَدْ | كَفَرْتُمْ | بَعْدَ | إِيمَانِكُمْ ط | إِنْ نَعْفُ |
|---|---|---|---|---|---|
| عذرونه مکوئ | اپه تحقیق سره | اکفر کړې دې تاسو | اروستو | ادایمان راوړلوستاسونه | که امعاف کړو مونږ |

تاسو عذرونه مه کوئ (چه مونږ نه غلطی شوې ده بلکه) تاسو د خپل ظاهری ایمان نه پس کافران شوی ئی که

| عَنْ طَائِفَةٍ | مِنْكُمْ | نُعَذِّبْ | طَائِفَةً | بِأَنَّهُمْ | كَانُوا |
|---|---|---|---|---|---|
| یوه ډله | استاسونه | انو ضرور به عذاب ورکوو | ابلې ډلې ته | اپه سبب دهغې چې | هغوئ اوو |

ستاسو یوې ډلې ته معافی اوکړو (چه توبهٔ اوباسي) نو بلې ډلې ته به عذاب ورکړو ځکه چه دغه ډله

| مُجْرِمِينَ ۞ ع |
|---|
| مجرمان ا |

نافرمانه ده.

**قوله تعالی:: قُلْ أَبِاللَّهِ وَآيَاتِهِ**

**دمنافقانود الله ﷻ نبیﷺ او قرآن پورې خنداګانې:** یومنافق وئیل زمونږ دا قرآن خوان خلق ډیر خیټوان دروغژن اوبزدله دی. کله چه حضورﷺ ته دې ذکر اوشونو دې عذرپیش کولو سره راغله یارسول اللهﷺ! مونږ خو هسې د وخت تیرولودپاره دخنداخبرې کولې. نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه او ستاسود خنداد پاره الله ﷻ دهغه رسولﷺ او هم قرآن پاتې شوې دې.(۳)یادساتئی که مونږ ځوک معاف کړو نو چاته به سخته سزاهم ورکوو. دغه وخت کښې نبی کریم ﷺ په خپله اوښه سور روان وو. دې منافق د رسول اللهﷺ په پړی لاس نیولې ووکانړو سره نې تکرې خورلې اودې ویناکولوسره روان وو. حضورﷺ به د هغه طرف ته کتل هم نه. کوم یو مسلمان چه د ده دا خبره اوریدلې وه هغه هم په هغه وخت جواب هم ورکړې وو چه ته فضول خبرې کونکې ئې ته دروغژن ئې ته منافق ئې. دا واقعه د جنګ تبوک ده او هغه دا ذکر په جمات کښې کړې وو.

**د غزوة تبوک په لاره کښې دمنافقانو خبرې اترې::** (ف) د ابن اسحاق رحمه الله په سیرت کښې دی چه تبوک ته په تلوکښې رسول اللهﷺ سره د منافقانو یوه ډله هم وه. په کومه کښې چه ودیعه بن ثابت او

---

(۱) ۴۷/محمد: ۲۹.

(۲) الطبری: ۳۳۲/۱۴.

(۳) الطبری: ۳۳۲/۱۴.

مخشی بن حمیر وغیره وو. دوی په خپل مینځ کښې وئیل چه د نصرانیانو جنګ ته د عربوخپل مینځ کښې جنګ په شان ګنړل سخته خطرناکه غلطی ده. بنه ده هغوی دې هلته وهی اوموږ به نی دلته د بوسوسخی جوړ کړو. په دې باندې د هغوی دویم سردار مخشی اووئیل روره دا خبرې پرېږده ګنی دا ذکر به بیا په قرآن پاك کښې راشی. کوږې خوړل خو زموږ په نیز د هغه رسوانې نه ډیر بنه دی. وړاندې وړاندې به دې خلقو دا تذکرې کولې او روان وو حضورﷺ حضرت عمارؓ ته اوفرمائیل چه لاړ شه اوګوره داخلق چرته اوسوزیدل هغوی نه تپوس اوکړه چه تاسو دا ذکرکولو.که هغوی انکار اوکړی نو ته ورته اووایه چه تاسودادا خبرې کولې.حضرت عمارؓ لاړو اوهغوی ته نی دا اووئیل دوی دحضورﷺ مخې ته راغله او عذر اومعذرت نی کولو. حضورﷺ په خندا خندا کښې زموږ د خلې نه داسې خبره وتلې.

**د مخشی دمنافقت نه توبه اوشهادت::** ودیعه خودا اووئیل خو مخشی بن حمیر اووئیل یارسول اللهﷺ! تاسو زما او زما د پلار نوم ته اوګورئی نوصرف په دې وجه زما نه دا فضول حرکت اوشو معافی راکړه. نود دې نه الله ﷻ معافی اوکړه او په دې آیت کښې هم د دې نه معافی کولو ذکر دی. دې نه پس هغه خپل نوم بدل کړو او عبدالرحمن نوم نی کیخودو رښتونې مسلمان جوړشو اود الله ﷻ نه نی دعااوکړه یا الله ﷻ ما په خپله لارکښې شهید کړې چه دا داغ رانه اووینځلې شی. نو د یمامه په ورځ دا بزرګ شهید شو. اود هغه لاش هم ملاؤنه شو.

**د منافقانو پیغور او دهغه جواب::** دې منافقانو دپیغور په توګه وئیلې وو څه سترګې اوشلیدې چه اوس دوی لاړل چه د رومیانو قلعه ګانې اومحلونه به فتح کوو،بنه دې عقل مندنی او هوښیاتوب ته اوګوره. کله چه الله ﷻ حضورﷺ د دې خبرونه خبرکړو نو دوی صفامنکرشو اوپه قسمونو خوړلو سره نی اووئیل چه موږ دا خبره نه ده کړې موږ خو په خپل مینځ کښې خندا کوله. او په دوی کښې یو کس وو چه هغه به ان شاء الله ﷻ معاف کړې وی. دا به نی وئیل چه یاالله زه ستا د پاك کلام یو ایت اورم په کوم کښې چه زما د ګناه ذکر دې. کله نی هم چه اورم زما غوږونه زبږ شی اوزما زړه رچیږی. اې ربه ته زما توبه قبوله کړه اومایپخپله لارکښې شهیدکړه اوداسې چه نه څوك ماته غسل راکړی نه کفن راکړی اونه مې خښ کړی.هم دغه اوشو چه په جنګ یمامه کښې دې دشهیدانوسره شهیدشودټولو شهیدان لاشونه ملاؤ شو خود هغه د لاش پته اونه لګیده(۱)د الله ﷻ د طرفنه منافقانوته جواب ملاؤشو اوس بهانې مه جوړونی سره ددې چه تاسوتش دخلې مسلمانان وئې اوس تاسو هم دې ژبه کافران شوئي.دا وینا د کفر کلمه ده چه تاسود الله ﷻ دهغه د رسولﷺ اوقرآن پاك پسې خندا اوکړه که موږ څوك معاف هم کړو خوتاسو ټولو سره به داسې معامله نه وی ستاسو د دې جرم اود دې خرابې وینا اود دې کفر وینا به تاسو سخته سزا خورئی.

| اَلْمُنٰفِقُوْنَ | وَالْمُنٰفِقٰتُ | بَعْضُهُمْ | مِّنْۢ بَعْضٍ | يَأْمُرُوْنَ |
|---|---|---|---|---|
| منافقان سړی | اومنافقانې ښځې | خینی ددوی | دخینو نه دی | حکم کوی دوی |
| منافقان سړی اومنافقان ښځې خپلو کښې سره یو دی (خلقو ته) د ګناهونو حکم کوی | | | | |

| بِالْمُنْكَرِ | وَيَنْهَوْنَ | عَنِ الْمَعْرُوْفِ | وَيَقْبِضُوْنَ | اَيْدِيَهُمْ | نَسُوا | اللّٰهَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په بدئ باند | اومنع کوی | دنیکئ نه | اومنع ساتی دوی | لاسونه خپل | هیرکړودوی | الله |
| او د نیکئ د کارونو نه منع کوی او خپل لاسونه (د الله په لارکښې د خرچ کولو نه) بندوی دوی الله | | | | | | |

(۱) ابن هشام: ۴/۱۲۱-۱۲۲.

فَنَسِيَهُمْ ط إِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ۝۶۷ وَعَدَ اللّٰهُ الْمُنٰفِقِيْنَ

نو الله هیر کړل دوئ | بیشکه منافقان | هم دوئ | فاسقان دی | او وعده کړی ده الله | د منافقانو سره

هیر کړي دي نو الله ﷻ دوی هم هیر کړل | هم منافقان نافرمان دی | الله ﷻ د منافقانو سره او

وَالْمُنٰفِقٰتِ وَالْكُفَّارَ نَارَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ط هِيَ

او د منافقانو ښځو سره | او د کافرانو سره | د اور | د دوزخ | همیشه به وی دوئ | په هغې کښې | هغه

منافقانو ښځو او د کافرانو سره د جهنم د اور وعده کړې ده په جهنم کښې به همیشه د پاره وی

حَسْبُهُمْ ج وَلَعَنَهُمُ اللّٰهُ ج وَلَهُمْ عَذَابٌ مُّقِيْمٌ ۝۶۸ لا

کافی دي دوئ لره | او لعنت کړې دی په دوئ الله | او دي دوئ لره | عذاب | همیشه

جهنم د دوی د پاره کافی دې او الله په دوی باندې لعنت کړې دې. او د دوی د پاره همیشه عذاب دې

**قوله تعالی:: اَلْمُنٰفِقُوْنَ وَالْمُنٰفِقٰتُ**

**د منافقانو یو څو نور صفتونه:-** د منافقانو خصلتونه د مؤمنانو بالکل مخالف وی. مؤمنان د ښیګړې حکم کوی او د بدو نه منع کول کوی او منافقان د بدو حکم کوی او د نیکونه بندول کوی. مؤمنان سخی وی او منافقان بخیل وی. مؤمن د الله ﷻ په ذکر کښې وی او منافقان د الله ﷻ ذکر هیر کړې وی. د دې په بدله کښې الله ﷻ هم هغوی سره هغه معامله کوی لکه څوك چه چا هیر کړې وی. د قیامت په ورځ به هم دا دوی ته وئیلې شی چه نن به مونږ تاسو هغه شان هیر وو لکه څنګه چه تاسو د دې ورځې دا ملاقات هیر کړې وو.[1]

**د منافقانو د اخرت سزا::** منافقان د حق لارې نه لرې شوی دی د ګمراهئی په چکرو هر څه هیر کړې اینختی دی. د دې منافقانو او کافرانو د بدعملو سزا د هغوی د لاره الله ﷻ په دوزخ کښې مقرر کړې ده څرنه چه به هغوی د همیشه د پاره پراته وی او د هغه خایئ عذاب به د دوی د پاره بس وی. دوی رحیم رب د خپل رحمت نه لرې کړی دی او د دوی د پاره نې د همیشه والی عذاب کیخودې دې.

كَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ كَانُوْٓا اَشَدَّ مِنْكُمْ قُوَّةً

اے منافقانو تاسو پشان د هغه کسانو یئ | چې مخکښې ستاسونه وو | او وو هغوئ | زیات سخت ستاسونه | په قوت کښې

(منافقانو ستاسو مثال په منافقت کښې) ستاسو نه د وړاندې خلقو پشان دې (حالانکه) هغوی ستاسو نه زیات طاقتور وو

وَّاَكْثَرَ اَمْوَالًا وَّاَوْلَادًا ط فَاسْتَمْتَعُوْا بِخَلَاقِهِمْ

او زیات | په مال کښې | او په اولاد کښې | انو فائده واغستله هغوئ | په حصه خپله د دنیا

او په مال او اولاد کښې ستاسو نه زیات وو | نو هغوی (په دنیا کښې) په خپله حصه باندې فائده واخستله

فَاسْتَمْتَعْتُمْ بِخَلَاقِكُمْ كَمَا اسْتَمْتَعَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ

او فائده واغسته تاسو | په حصې خپلې سره | لکه څنګه چې | فائدې اغستي وې | هغه کسانو | چې مخکښې ستاسونه وو

او تاسو (هم) په خپله حصه باندې فائده واخستله لکه څنګه چه هغه خلقو د خپل حصې مطابق فائده اخستې وه

---

[1] ۴۵/الجاثیة: ۳۴.

| بِخَلَاقِهِمْ | وَخُضْتُمْ | كَالَّذِيْ | خَاضُوْاؕ |
|---|---|---|---|
| په حصې خپلې سره ا واخته شوئ تاسو | ا په هغسې خبرو کښې لکه چې هغوئ اخته شوی وو په هغې کښې | | |
| کوم چه ستاسو نه وړاندې وو ا و تاسو هم په هغه خبرو کښې مشغوله شوې څنګه هغوی مشغوله شوی وو ا | | | |

| أُولٰٓئِكَ | حَبِطَتْ | أَعْمَالُهُمْ | فِي الدُّنْيَا | وَالْاٰخِرَةِ | وَأُولٰٓئِكَ |
|---|---|---|---|---|---|
| دغه کسان چې دي ا ضائع شول ا عملونه دهغوئ ا په دنیا کښې ا و په آخرت کښې ا او دغه کسان دي | | | | | |
| د دغه خلقو عملونه په دنیا او په آخرت کښې ضائع شوی دی ا او هم دوی (که په دنیا کښې نه وی خو په | | | | | |

| هُمُ | الْخٰسِرُوْنَ۝ |
|---|---|
| چه هم هغوئ دی ا نقصانیان ا | |
| آخرت کښې ضرور) تاوانیان دی ا | |

**قوله تعالى:: كَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ**

**د ظالمانود انجام نه عبرت حاصل کړئ:-** دې خلقوته هم د وړاندینوخلقو په شان عذاب اورسیدو. د خلاق نه مراد دلته دین دې څنګه چه وړاندینی خلق په دروغو اوباطلوکښې ډوبونه وهل هم داسې دې خلقو هم اوکړه. ددوی دا فاسد اعمال بې کاره دی نه په دنیا کښې سودمند شو اونه په آخرت کښې ثواب ورکونکی شو. هم دغه صریح نقصان شو چه عمل ئې اوکړو او ثواب ملاؤ نه شو.

**یهود ونصاری چې څه کول دا امت به هم هغه کوی::** ابن عباس رضی الله عنه فرمائي لکه څنګه چه د نن شپه د صباد شپې په شان وی دغه شان په دې امت کښې هم د یهودیانو یوشان والې راغلو. زما خو خیال دې چه حضور ﷺ فرمائیلی دی چه د هغه ذات قسم د چا په قبضه کښې چه زما ځان دې چه تاسو به د هغوی مثل کونې تردې چه په هغوی کښې څوك د ځناور سوړې ته ورداخل شی نو تاسو به هم په هغې کښې ورننوځئ.دحضور ﷺ ارشاد دې چه د هغه ذات قسم د چا په لاس کښې چه زما روح دې تاسو به د خپل ځان نه د وړاندینوخلقو د طریقو تابعداری کوئې بالکل لیشت په لیشت ذراع په ذراع او لاس په لاس تر دې چه که هغوی چرته د یو ځناور په سوړه کښې ورننوتلي دی نو یقیناً تاسو به هم ورننوځئ. خلقو تپوس اوکړو چه یارسول الله ﷺ ا دې نه ستاسو کوم خلق مراد دی. آیا اهل کتاب؟ حضور ﷺ اوفرمائیل نور څوك دی. دا حدیث شریف بیانولو سره حضرت ابوهریره رضی الله عنه وئیل که تاسو غواړئ نود قرآن پاك دا الفاظ اولولئ (كَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ)([1])حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمائي د خلاق نه مراد دین دې. اوتاسو هم د هغوی په شان اوکړه لکه څنګه چه هغوی تپوس اوکړو آیاد فارسیانو او رومیانو په شان؟ حضور ﷺ اوفرمائیل نور خلق دی څوك. د دې حدیث شریف شواهد په صحیح حدیث کښې هم دی.([2])

| أَلَمْ يَأْتِهِمْ | نَبَأُ الَّذِيْنَ | مِنْ قَبْلِهِمْ |
|---|---|---|
| آیا نه دې راغلې دوئ ته ا خبر د هغه کسانو ا چې مخکښې ددوئ نه وو | | |
| آیا دوی ته د هغه خلقو (دعذاب) واقعات نه دی راغلي کوم چه د | | |

---

[1] الطبری: ۳۴۲/۱۴.
[2] صحیح بخاری کتاب الاعتصام باب قول النبی ﷺ لتتبعن سنن من كان قبلكم: ۷۳۱۹-۷۳۲۰، صحیح مسلم: ۲۶۶۹.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قَوْمِ نُوْحٍ | وَّعَادٍ | وَّثَمُوْدَ | وَقَوْمِ اِبْرٰهِيْمَ | وَاَصْحٰبِ مَدْيَنَ | وَالْمُؤْتَفِكٰتِ ؕ | |
| دقوم دنوح ا | اودعاد ا | اودثمود ا | اودقوم دابراهيم ا | اودملګرو دمدين ا | اودپاسته کړې شوي کلي | |
| دوی نه وړاندې ووچه د نوح عليه السلام قوم عاديان ثموديان د ابراهيم عليه السلام قوم د مدين خلق اود التهٔ شوو کلي وو | | | | | | |
| اَتَتْهُمْ | رُسُلُهُمْ | بِالْبَيِّنٰتِ ۚ | فَمَا كَانَ اللّٰهُ | لِيَظْلِمَهُمْ | | |
| راوړي وو هغوئ ته ا | رسولانو دهغوئ ا | ښکاره نښې ا | نو نهٔ وو الله ا | چې ظلم ئې کړې وې په هغوئ باندې | | |
| هغوی ته د هغوی پيغمبران په ښکاره نښو سره راغلي وو (خو په دې عذابولو کښې الله جل جلاله په هغوی باندې | | | | | | |
| وَلٰكِنْ كَانُوْٓا | اَنْفُسَهُمْ | يَظْلِمُوْنَ ۝ | | | | |
| ليکن وو هغوئ ا په | نفسونو خپلو ا | چې ظلم ئې کوؤ ا | | | | |
| ظلم نه وو کړې بلکه هغوی په خپله په خپلو ځانونو ظلم کونکي وو ا | | | | | | |

**قوله تعالیٰ: اَلَمْ يَاْتِهِمْ نَبَاُ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ**

**د دين د دښمنانو د انجام نه عبرت واخلئ:-** دې بدکارانو منافقانو ته نصيحت کولې شی چه د خپل ځان نه وړاندې د خپل ځان په شان خلقو حالاتو باندې دعبرت نظر واچوئی او اوګورئی چه دنبيانو عليهم السلام تکذيب کومه ميوه راوړه؟ د نوح عليه السلام د قوم غرقيدل سوا د مسلمانانونه د چا نه بچ کيدل يادکړئی. د عاديانو د هود عليه السلام نه منلو سره د هوا په چپوسره تباه کيدل يادکړئی. د ثموديانو د حضرت صالح عليه السلام دروغ ګنړلو او دالله جل جلاله نښنه اوښه وژل په وجه يوزړه ماتونکې چغې تباه اوبربادکيدل يادکړئی. د حضرت ابراهيم عليه السلام د دښمنانونه بچ کيدل اود هغه دښمنان غرقيدل. د نمرود بن کنعان بن کوش غونډې بادشاه سره د خپل لښکريانو تباه کيدل مه هيره وئی او هغوی ټول د لعنت په وجه ټول بې نوم او نښې کړې شو. دشعيب عليه السلام قوم هم په دې بدکارو اوکفر په بدله کښې په زلزله سره اود سائبان والا ورځ په عذاب باندې لاندې باندې کړل کوم چه د مدين اوسيدونکي وو. دلوط عليه السلام کلي پرمخې پراته دی. مدين او سدوم وغيره الله جل جلاله هغوی هم د خپل نبی لوط عليه السلام نه منلو په وجه اودخپلې بدفعلئی نه پريخودو په وجه يو بو په زمکه کښې ورخښ کړل. هغوی له زمونږ رسول زمونږ کتاب اوښکاره معجزې او صفا دليلونه اورسيدل خو هغوی يو هم اونه منل اوآخر دخپل ظلم په وجه پخپله برباد شو. الله جل جلاله حق واضحه کړو کتاب ئی نازل کړو رسول ئی راوليګلو حجت ئی ختم کړو خودوی د رسولانو په مقابله باندې تيار شو د الله جل جلاله د کتاب تابعداری کولونه اوتختيدل. دحق مخالفت ئی اوکړو نو د الله جل جلاله لعنت پرې راکوز شو او هغوی ئی تورې خاورې کړه.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَالْمُؤْمِنُوْنَ | وَالْمُؤْمِنٰتُ | | | | | |
| او مومنان سړي ا | او مومناني ښځې ا | | | | | |
| او مؤمنان سړي او مؤمناني ښځې | | | | | | |
| بَعْضُهُمْ | اَوْلِيَآءُ | بَعْضٍ ۘ | يَاْمُرُوْنَ | بِالْمَعْرُوْفِ | وَيَنْهَوْنَ | عَنِ الْمُنْكَرِ |
| ځيني د دوئ ا | دوستان دی ا | د ځينو ا | حکم کوی دوئ ا | په نيکئ سره ا | او منع کوی ا | د بدئ نه |
| دوی په خپل مينځ کښې ملګری دی ا (يو بل ته) د نيکئ حکم کوی او د بدئ نه منع کوی | | | | | | |

| وَرَسُوْلَهٗ | اللّٰهَ | وَيُطِيْعُوْنَ | وَيُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ | وَيُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ |
|---|---|---|---|---|
| او رسول دهغه | ادالله او د | اوحکم مني | زکاة ا | او قائموي مونځ ا او ورکوي |

اومونځ قائموي او زكاة وركوي (لنډه دا چه په ټولو كارونو كښي) د الله او د هغه د رسول تابعداري كوي

| حَكِيْمٌ | عَزِيْزٌ | اِنَّ اللّٰهَ | سَيَرْحَمُهُمُ اللّٰهُ | اُولٰٓئِكَ |
|---|---|---|---|---|
| دحكمت خاوند دي | غالب دي ا | بیشکه الله ا | زربه رحم اوكړي په دوئ باندالله ا | دا كسان چي دي ا |

په دغه خلقو به الله ﷻ رحم اوكړي او الله غالب دي (څوك ئي د ارادي نه منع كولي نشي) اوصاحب دحكمت دي

**قوله تعالى: وَالْمُؤْمِنُوْنَ وَالْمُؤْمِنٰتُ بَعْضُهُمْ اَوْلِيَآءُ بَعْضٍ**

**مسلمانان ديوبل لاسونه اومتي دي:** دمنافقانويدخصلتونه بيانولوسره دمسلمانانونيك صفتونه بيانولي شي چه دوي ديو بل امداد كوي. د يو بل لاسونه او متي جوړيږي. په صحيح حديث كښي دي چه مؤمن د مؤمن د پاره د ديوال په شان دي د كوم چه يوه حصه بلي حصي ته مضبوطيا وركوي. حضورﷺ دي فرمان كولو سره خپلي دلاسونوګوتي هم په يو بل كښي واچولي اوونې خودلي[1] او په صحيح حديث كښي دي مؤمنانو په محبت او دوستئ كښي په مثال د يوبدن دي. چه يوې حصي ته هم تكليف وي نو ټول بدن په بيمارئ او بيدارئ كښي اخته وي[2] دا دپاكو نفسونو خلق د نورو تربيت نه هم غافل نه پاتي كيږي. ټولوته نيكئ ښائي، ښه خبري ښائي. د خرابوكارونواو خرابوخبرو نه تروسه پوري منع كول كوي. د الله ﷻ حكم هم دغه دي. فرمائي چه په تاسوكښي يوه ډله خامخا داسي كيدل پكار دي چه د نيكو حكم كوي اودبدو نه منع كول كوي[3] دا مونځ ګذار وي، ورسره زكوة هم وركوي دي د پاره چه يو طرف ته د الله ﷻ عبادت وي اوبل طرف ته د مخلوق زړه ساتنه وي. د الله ﷻ او د هغه د رسولﷺ تابعداري د هغوي زړه راښكونكي مشغله وي. كوم حكم چه ملاؤ شو په خائ راوړو او د څه نه چه منع كړي شو بس منع شو. هم دغه خلق دي چه د الله ﷻ د رحم حقداران دي. هم دغه صفتونه دي دځه په وجه چه ده ته د الله ﷻ رحمت ورټوپ كوي. الله تعالیٰ عزيز دي اوهغه دخپلو فرمانبردارو عزت پخپله هم كوي او هغه عزت منذجوروي. په حقيقت كښي عزت هم د الله ﷻ د پاره دي اوهغه خپلو رسولانواو ايماندارانو غلامانوته هم عزت وركړي دي. د هغه حكمت دي چه په هغوي كښي دا صفتونه كيخودل او په منافقانوكښي ئي دغه خصلتونه كيخودل. د هغه د حكمت بيخ ته څوك رسيدلي شي چه څه غواړي نو كوي. هغه د بركتونو او د اوچت ذات خاوند دي.

| مِنْ تَحْتِهَا | تَجْرِيْ | جَنّٰتٍ | وَالْمُؤْمِنٰتِ | الْمُؤْمِنِيْنَ | اللّٰهُ | وَعَدَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| به لاندي دهغي نه | چي بهيږي | ادباغونو | اودمومنانو ښځو سره | دمومنانو سړو سره | الله | وعده كړي ده |

الله ﷻ د مؤمنانو سړو او مؤمنانو ښځو سره د جنتونو وعده كړي ده چه د هغي د(ځنګلود)لاندي به

| عَدْنٍ | فِيْ جَنّٰتِ | طَيِّبَةً | وَمَسٰكِنَ | فِيْهَا | خٰلِدِيْنَ | الْاَنْهٰرُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| هميشه شنو كښي | په باغونو | پاك | اوكورونه ا | په هغي كښي | هميشه به وي | نهرونه |

ولي بهيږي په هغي كښي به هميشه وي او (په جنت كښي به) د هميشه اوسيدو خايونه وي

[1] صحيح بخاري كتاب المظالم باب نصر المظلوم: ۲٤٤٦ صحيح مسلم: ۲۵۸۵، ترمذي: ۱۹۲۸، احمد: ٤/٤٠٤.
[2] صحيح بخاري كتاب الادب باب رحمة الناس والبهائم: ۶۰۱۱ صحيح مسلم: ۲۵۸۶، احمد: ٤/٢٧٠ مسند حميدي: ۹۱۹، مسند الطيالسي: ۷۹۰.
[3] ۳/آل عمران: ۱۰٤.

| وَرِضْوَانٌ مِّنَ اللَّهِ | أَكْبَرُ | ذَٰلِكَ هُوَ | الْفَوْزُ الْعَظِيمُ |
|---|---|---|---|
| اورضا دطرفه دالله نه | ډيره لويه (خبره ده) | اهم دا | كاميابي لويه ده |

اود الله ﷻ رضا ډير لوئي څيز دي (كومه چه به دوى ته په جنت كښې حاصله وى) اودا لويه كاميابي ده

**قوله تعالى:: تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ**

**دجنت ښكلې نظارې اوجنتيان:** دمؤمنانو په دې نيكوياندې چه به كوم اجراوثواب ملاويږي د هغې بيان كولې شي چه ابدى نعمتونه هميشه راحتونه او باقي پاتې كيدونكي جنتونه چرته چه به قدم په قدم باندې دښكلې اوبو چينې راخوټكيږي. چرته چه اوچت ښائسته ښكلې صفاستهرا اوښائسته كړې شوي محلونه او مكانونه دى. حضورﷺ فرمائيل چه دوه جنتونه خوصرف د سروزرو دى. د هغه ځائ لوښي او هر څه چه هلته دى ټول هم د سرو زرو دى اودوه جنتونه د سپينو زرو دى په هغې كښې لوښي او ټول څيزونه چه هلته دى هغه هم. دلته د الله ﷻ ديدار كښې به هيڅ پرده نه وى بغيرد لوئي د څادر نه چه د الله ﷻ عزوجل په مخ باندې دې. دا به په جنت عدن كښې وى[1] اوپه حديث كښې دى چه د مؤمن د پاره به په جنت كښې يوه خيمه وى اوهم د يوې مرغلرې نه به جوړه وى اود هغې اوږدوالې به شپيته ميله وى. د مؤمن بيبيانې به هم هغه وى كومو ته چه دې خي راخي خويوي بلې ته به ښكارى نه[2] د حضورﷺ فرمان دې چه څوك په الله ﷻ اود هغه په رسولﷺ باندې ايمان راوړي مونځ كوى د رمضان شريف روژې ساتي نو په الله ﷻ باندې دا حق دى چه هغه دې جنت ته يوخي. كه هغه هجرت كړې وى اوكه په خپل وطن كښې وو. خلقو اوونيل چه بيا به مونږ نورو ته هم داحديث بيان كړو. نبى كريمﷺ اوفرمائيل چه په جنت كښې به سل درجې وى كومې چه الله ﷻ د خپلې لارې د مجاهدينو د پاره جوړې كړې دى. په هرو دوو درجوكښې دومره فاصله ده لكه د زمكې او آسمان. نو چه كله تاسو د ا لله تعالى نه د جنت سوال كوئې نو جنت الفردوس غواړئې جنتونه خو ټول په خپل ځائ ښائسته دى خو دا د ټولو نه ښه اوبهترجنت دې. دجنتونو ټول نهرونه هم د دې ځائ نه اوخي. ددې چت د رحمن عرش دې[3] فرمائي جنتيان به جنتى بالاخانوته داسې ګورى لكه څنګه چه تاسو دآسمان پرقيدونكو ستورو ته ګورئى.[4]

**وسيله او مقام محمود::** دا خبره دې هم معلومه وى چه په ټولو جنتونوكښې يوخاص مقام دې د كوم نوم چه وسيله ده څكه چه هغه عرش ته بالكل نيزدې دې اودا ځائ دې د حضرت محمدﷺ. حضورﷺ فرمائي چه كله تاسو په ما باندې درود وائې نود الله ﷻ نه زما د پاره وسيله غواړئې. تپوس اوكړې شو وسيله څه څيز دې. ونى فرمائيل چه د جنت هغه اوچته درجه كومه چه به يو سړي ته ملاويږي اومانه د الله ﷻ په ذات باندې كلك يقين دې چه هغه سړې هم زه يم[5] حضورﷺ فرمائي چه د مؤذن د اذان جواب وركوه څنګه كلمې چه هغه وائى ته هم هغه شان وايه بيا په ما باندې درود وايه. كوم سړې چه په ما باندې درود راليګى الله ﷻ په هغه باندې لس رحمتونه نازلوى. بيا زما د پاره وسيله غواړئى هغه په جنت كښې يو ځائ دې چه د الله ﷻ په ټول مخلوق كښې به صرف هم يو كس ته ملاويږى اوزما اميد دې چه هغه به هم ماته ملاويږى. كوم سړې چه زمادپاره داوسيله غواړى دهغه د پاره زما شفاعت

---

[1] صحيح بخارى كتاب التوحيد باب قول الله ﴿وجوه يومئذ ناضرة إلى ربها ناظرة...﴾ :۷۴۴۴،صحيح مسلم: ۱۸۰

[2] صحيح بخارى كتاب التفسير سورة الرحمن باب ﴿حورمقصورات في الخيام﴾:۴۸۷۹، صحيح مسلم:۲۸۳۸.

[3] صحيح بخارى كتاب الجهاد باب درجات المجاهدين في سبيل الله: ۲۷۹۰،احمد:۳۳۵/۲.

[4] صحيح بخارى كتاب الرقاق باب صفة الجنة والنار:۶۵۵۵، صحيح مسلم: ۲۸۳۰، احمد:۳۴۰/۵.

[5] ترمذى كتاب المناقب باب سلوالله لي الوسيلة....:۳۶۱۲وهوصحيح، احمد:۲۶۵/۲.

د قیامت په ورځ حلال شو([1]) فرماني زما د پاره وسیله غواړئ اوچه څوك په دنیا کښې زما د پاره د وسیلې دعا کوی زه به دقیامت په ورځ د هغه ګواه او سفارشی به جوړیږم. ([2])

**دجنت صفت اودهغې دحصول طریقې::** صحابه کرامو رضي الله عنهم یوځل د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو یارسول الله ﷺ! مونږ ته د جنت باره کښې خبرې واوروه چه د دې بنیاد په څه څیز دې؟ فرماني چه د سرو زرو اود چاندۍ خښتې د خالص مشك خټه دې کانړې، لؤلؤ او یاقوت دی د دې خاوره زعفران دی دې ته چه څوك لاړشي هغه به په نعمتونوکښې وی چه کله به هم خالی نه وی هغه به همیشه ژوندی وی دکوم نه پس چه د مرګ ویره هم نه وی نه به د هغه کپړې خرابیږی اونه به د هغه ځوانی ختمیږی ([3]) فرماني په جنت کښې داسې بالاخانې دی دکوم دننه حصه چه د بهر نه ښکاری اود بهر حصه دننه نه. یواعرابی تپوس اوکړو حضور ﷺ! دا بالاخانې د چا د پاره دی؟ حضور ﷺ اوفرمائیل چه څوك ښې خبرې کوی په خلقو خوراك کوی، روژې ساتی، د شپې د خلقو د اوده کیدو په وخت کښې د تهجدو مونځ کوی. ([4]) فرماني چه څوك شته چه د جنت شوق ئې وی او د دې د پاره محنت کونکې وی. والله د جنت یو دیوال هم د محدودکولو د پاره نشته هغه خوبو پرقیدونکې نوردې. اوخوشبویه شوې ګلستان دې اوپاك صفا او اوچت محلونه دی اوجاری ساری نهرونه دی. د پخو میو غونچې دی. ښکلې مخونه او ښائسته پاکې خوشحالونکې حورې دی اوډیرې قیمتی د رنګینو ریښمو جوړې دی. د همیشه د پاره مقام دې، د سلامتنی کور دې، بار کړې شوې میوې دی،خورشوې شینکنی دې، کولاووالی اوراحت دې، امن دې آرام دې، نعمت او رحمت دې. عالیشان او خوشحالونکې نظاره ورکونکی حویلئ دی. دې اوریدو سره ټولو اووئیل حضور ﷺ! مونږ ټول د دې جنت شوق منديو اود دې د حاصلولو د پاره کوشش کوو. حضور ﷺ اوفرمائیل چه ان شاء الله وائې. نو خلقو ان شاء الله اووئیل.([5])

**د جنتیانو سره د الله ﷻ کلام::** بیا فرمائی د دې ټولو نعمتونونه اوچت او اعلی نعمت د الله ﷻ رضا ده. فرمائی چه الله ﷻ به جنتیانو ته اووائی ای اهل جنت! هغوی به وائی **﴿لبیک ربنا وسعدیک﴾** و**﴿والخیر فی یدیک﴾** تپوس به کوی چه وائې تاسو خوشحاله شوئی هغوی به جواب ورکړی چه خوشحالیږو به ولې نه ای پروردګارا مونږ ته دې هغه راکړه چه په مخلوق کښې چاته نه دی ورکړې شوی. الله ﷻ به اوفرمائی چه واخلئی زه تاسو ته د دې نه ډیر اعلی او ښه څیز درکوم. هغوی به وائی ای الله! د دې نه به ښه او بهتر څیز بل څه وی؟ الله ﷻ به اوفرمائی واورئی ما خپله رضامندی تاسو ته درکړه. د نن نه پس به زه چرې هم تاسو نه خفه نه شم([6]) حضور ﷺ فرمائی چه کله جنتیان جنت ته اورسی نوالله ﷻ به ورته اوفرمائی چه څه نور څه غواړئی چه درکړم. هغوی به وائی ای الله کوم چه تامونږ ته راکړی دې نه پس خو بل بهتر څیز کیدې نه شی. الله ﷻ به فرمائی هغه زما رضامندی ده چه د ټولو نه بهتر ده. ([7]) امام حافظ ضیاء مقدسی رحمه الله د جنت په صفتونو یومستقل کتاب لیکلې دې په هغې کښې ئې داحدیث په شرط کښې صحیح فرمائیلې دې. والله اعلم.

---

[1] صحیح مسلم: کتاب الصلاة باب استحباب القول مثل قول المؤذن لمن سمعه...: ۳۸۴،ابوداؤد: ۵۲۳،مسندابی عوانه: ۳۳۶/۱.
[2] طبرانی فی الاوسط: ۶۲۷وسنده صحیح،مجمع الزوائد: ۳۳۲/۱.
[3] احمد: ۳۰۴/۲-۳۰۵،ترمذی: ۲۵۲۶.
[4] ترمذی کتاب الصفة الجنة باب ماجاء فی صفة غرف الجنة: ۲۵۲۷وهوحسن، ابن ابی شیبه: ۶۲۵/۸.
[5] ابن ماجه کتاب الزهد باب صفة الجنة: ۴۳۳۲، ابن حبان: ۷۳۸۱.
[6] صحیح بخاری کتاب التوحید باب کلام الرب مع اهل الجنة: ۷۵۱۸، صحیح مسلم: ۲۸۲۹، ترمذی: ۲۵۵۵، احمد: ۸۸/۳.
[7] ابن حبان الاحسان: ۷۳۹۶، حاکم: ۸۲/۱.

يَاَيُّهَا النَّبِيُّ
ا اے نبی
اې پیغمبر

جَاهِدِ الْكُفَّارَ وَالْمُنٰفِقِيْنَ وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ ۚ وَمَأْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ۚ
جهاد کوه | دکافرانو سره | او د منافقانو سره | او سختی کوه | په هغوئ | او آخری ځائي دهغوئ | دوزخ دی
د کافرانو او منافقانو سره جهاد کوئ او په دوئ باندې سختي کوی او د دوی ځائي جهنم دی

وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ۝ يَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ مَا قَالُوْا ۚ وَلَقَدْ قَالُوْا
او بد ځائي دی اد ورتلو | قسمونه خوری داخلق | په الله | چی نه دی ونیلی دوئ هیڅ څه | حالانکه او نیلی وه دوئ
او د ورتلو په اعتبار سره دیربد ځائي دی| په الله قسمونه خوری چه دوی (ستاسو خلاف) هیڅ خبره نه ده کړې حالانکه

كَلِمَةَ الْكُفْرِ وَكَفَرُوْا بَعْدَ اِسْلَامِهِمْ وَهَمُّوْا بِمَا
خبره دکفر | او کفرئي اوکړو | پس | اد (ظاهری) اسلام را اوړلو خپلونه | او اراده ئي اوکړه | د هغه کار
د کفر خبره یې کړې ده | او د خپل ظاهری اسلام نه پس کافران شوی دی | او دهغه څه قصد ئي کړې وو چه

لَمْ يَنَالُوْا ۚ وَمَا نَقَمُوْا اِلَّا اَنْ اَغْنٰهُمُ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ
چی اونه رسیدل هغې ته | او نه کوی دشمنی دوئ | مگر | په دې خبره | چی غنیان کړی دی دوئ | الله | او رسول دهغه
کامیاب په کښې نشو | او دوی صرف په دې وجه دشمنی کوی چه الله او د هغه رسول په خپل فضل سره

مِنْ فَضْلِهٖ ۚ فَاِنْ يَّتُوْبُوْا يَكُ خَيْرًا لَّهُمْ ۚ وَاِنْ يَّتَوَلَّوْا
په فضل خپل سره | انو که چرې | توبه اوویسته دوئ | اوی به | بهتره | دپاره ددوئ | او که مخ واړوو دوئ
مالداران کړل | که دوی توبه ویستله نو دا به د دوی دپاره دیره ښه وی | او که دوی اعراض او کړو

يُعَذِّبْهُمُ اللّٰهُ عَذَابًا اَلِيْمًا ۙ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ۚ وَمَا لَهُمْ
نو عذاب به ورکړی دوئ ته الله | عذاب | درد ناك | په دنیا | او په آخرت کښی | او نشته | دپاره ددوئ
(د توبې ویستلو نه) نو الله ﷻ به دوی ته په دنیا او په آخرت کښې دردناک عذاب ورکړی | او د دوی دپاره

فِي الْاَرْضِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ۝
په زمکه کښی | اخوك دوست | او نه مددگار |
به په زمکه کښې هیڅ خوک دوست او مددګار نه وی |

قوله تعالی: يَاَيُّهَا النَّبِيُّ جَاهِدِ الْكُفَّارَ وَالْمُنٰفِقِيْنَ

**منافقانوسره دجنګ جاری ساتلو حکم:**- کافرانو او منافقانو سره د جهاد او په هغوی د سختۍ حکم اوشو د مؤمنانو سره په تیټه د ملاویدلو حکم اوشو. د کافرانو اصلی ځائي دوزخ او خودلو.

**درسول کریم ﷺ څلور توری:**: وراندې حدیث تیرشوې دی چه حضور اکرم ﷺ الله ﷻ څلورو تورو سره مبعوث فرمائیلي. یوه توره خود مشرکانو دپاره ده لکه فرمائي ﴿فَاِذَا انْسَلَخَ الْاَشْهُرُ الْحُرُمُ فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِيْنَ﴾ د حرمت والا میاشتې تیریدوسره په مشرکانو باندې حمله اوکړئی. دویمه توره د اهل کتابو کفارو کښې

فرمانی ﴿ قَاتِلُوا الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ ﴾ یعنی څوك چه په الله ﷻ اود قیامت په ورځ ایمان نه راوړی. د الله ﷻ اود هغه د رسول ﷺ حرام کړي شوی حرام نه منی، حق دین نه قبلوی. دې اهل کتابوسره جهاد کوئې تر کومې پورې چه هغوی د ذلت سره تيټ سرې په خپلولاسونوجزیه ورکول منظور نه کړی. دریمه توره په منافقينوكښې،ارشاد دې ﴿جَاهِدِ الْكُفَّارَ وَالْمُنَافِقِينَ﴾ کافرانواومنافقانوسره جهاد اوکړئې.څلورمه توره په باغیانوکښې، فرمان دې ﴿فَقَاتِلُوا الَّتِي تَبْغِي حَتَّى تَفِيءَ إِلَى أَمْرِ اللَّهِ﴾ باغیانوسره جنګيږئې تر هغه وخته پورې چه ترکومې د الله ﷻ د احکاموطرف ته واپس شی او حکم منلوته رانه شی.

**دمنافقانوسره به جنګ په توره وی که په ژبه؟:**:دې نه ثابته شوه چه کله منافق خپل منافقت ښکاره کړی نوهغوی سره په توره جنګ کول پکار دی. د امام ابن جریر رحمه الله خوښې کړي شوې قول هم دغه دې. ابن مسعود ﷺ فرمانی چه که په لاس سره نه وی نو د خلې په غصې سره[1] ابن عباس ﷺ فرمانی چه الله ﷻ خو په تورې سره د جهادکولو حکم کړې دې اومنافقانوسره ئې زبانی جهاد حکم فرمائيلې دې اودا چه دوی سره به نرمی نه کوې[2] د مجاهد رحمه الله هم تقریبًا هم دغه وینا ده. په هغوی باندې شرعی حد قائمول هم هغوی سره جهاد دې. مقصد دادې چه کله خو به توره هم د هغوی خلاف راوچتولې شی خو ترکومې چه کار روان وی نو ژبه کافی ده. څنګه چه موقعه وی کوئې. قسمونه خوړلو سره وانی چه هغوی خوداسې خبره د ژبې نه نه ده ویستلې سره د دې چه هغوی د کفر وینا کړې ده اود خپل ظاهری اسلام نه پس ښکاره کفرئې کړې دې.

**د منافقانو تخریب کاری:**:دا آیت د عبدالله بن ابی باره کښې نازل شوې دې. د یو جهنی او انصاری په مینځ کښې جنګ اوشو جهنی په انصاری باندې غالب شو نو دې منافق انصار د هغه د امداد د پاره راپارول اوونیل ئې چه والله زمونږ اود دې محمد ﷺ خو هغه مثال دې چه خپل سپې ښه تازه اوتکړه کړه چه هم تاالوخورې. والله که مونږ داخل مدینې ته لاړو نومونږ عزت مند خلق به دا ټول کمینه خلق د هغه ځایه اوباسو. یومسلمان لاړو اوحضور ﷺ ته ئې داخبرې واورولې. نبی کریم ﷺ هغه سړې راوغوښتو او هغه نه ئې تپوس اوکړو نو قسم ئې اوخوړلو او انکار ئې اوکړو. نو الله ﷻ دا آیت نازل کړو.

**انصاروته درسول کریم ﷺ خصوصی دعا:**:حضرت انس ﷺ فرمانی زما د قوم چه کوم خلق د حره په جنګ کښې په کار راغلې وو په هغوی باندې زه ډیر خفه ووم. د دې خبر حضرت زید بن ارقم ﷺ ته اورسیدو نو هغه ماته په خط کښې اولیکل چه د رسول الله ﷺ نه ما اوریدلې دی حضور ﷺ به دعا کوله چه یا الله ! انصاراودانصارو ځامن اوبښې. ددې راوی ابن الفضل ته په دې کښې شك دې چه حضور ﷺ په دې دعاکښې دهغوی دنمسو نوم اخستې وو که نه؟

**د زید بن ارقم د صداقت ګواهی:**:نو حضرت انس ﷺ په موجوده خلقوکښې د چا نه د حضرت زید ﷺ د نسب باره کښې سوال اوکړو نو هغه اوونیل چه هم دغه زید هغه دې د چا د غوږونو اوریدلو خبرو د صداقت ګواهی چه په خپله رب ورکړې ده. واقعه داسې ده چه حضور ﷺ خطبه ورکوله چه یو منافق اوونیل که دې رښتونې وی نو مونږ خود خرو نه هم ډیر کم عقل یو. حضرت زید ﷺ اوونیل چه والله حضور ﷺ بالکل رښتونې دې اوبې شکه ته په خپل حماقت کښې د خر نه هم زیات احمق ئې. بیا هغه دا خبره د حضور ﷺ د غوږ ته تیره کړه. خوهغه منافق واوختو اوصفاانکار ئې اوکړو او وئې ونیل چه زید ﷺ دروغ وائی. په دې باندې الله ﷻ دا آیت نازل کړو اود حضرت زید ﷺ رښتونیوالې ئې بیان کړو. خومشهوره خبره دا ده چه واقعه د بنی المصطلق ده. ممکن دی چه راوی ته د دې آیت په وخت کښې

---

[1] الطبری: ۱۴/۳۵۸.
[2] ایضًا: ۱۴/۳۵۹.

وهم شوې وی اود دویم ایت په بدله کښې نی دا بیان کړې وی. هم دغه حدیث بخاری شریف کښې دې (۱) خود دې جملې پورې چه حضرت زید هغه دې د چا د غوږونو اوریدنکې خبرې د صداقت ربښتونوالې په خپله رب علیم ورکړو. ممکن دی چه روستو حصه د موسی بن عقبه د راوی خپل قول وی. هم په دې روایت کښې روستنی حصه د ابن شهاب د قول نه روایت دې. والله اعلم.

**د جنګ یرموک متعلق بله واقعه::** په مغازی اموی کښې دحضرت کعب بن مالک‌ د تبوك د واقعې نه پس دی چه کوم منافق موخر پریخودلې شوی وو اود چا باره کښې چه قرآن نازل شو په هغوی کښې بعضې حضور ﷺ سره هم وو. په هغې کښې جلاس ابن سوید بن صامت هم وو د هغه په کورکښې د عمیر بن سعدمور هم وه چه خپل ځان سره نی عمیر‌ هم بوتلې وو.کله چه د دې منافقانوباره کښې د قرآن پاك آیاتونه نازل شو نو جلاس وئیل والله که دا سړې په خپله وینا کښې ربښتونې دې نو مونږ خود خرو نه هم خراب یو. حضرت عمیر بن سعد‌ چه دا واوریده نو وئی فرمائیل چه هسې خو ته ماته د ټولونه زیات خوښ نې اوستاتکلیف ماته د خپل ځان د تکلیف نه هم ډیر سخت دې خوتا دې وخت کښې داسې خبره د خلې اوویستله که هغه زه اورسوم نو رسوائی ده او که نه نې رسوم نو هلاکت دې. رسوائی یقینا د هلاکت نه سپك څیز دې دې ویناکولوسره دا بزرګ په خدمت کښې حاضر شو او ټوله خبره نې حضور ﷺ ته اوکړه. جلاس ته چه کله معلومه شوه نو هغه د سرکارنبوت ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او په قسمونو خوړلو سره نې اووئیل چه عمیر‌ دروغ وائی ماخودا خبره هیڅ کله هم نه ده کړې. په دې باندې دا آیت نازل شو.

**د جلاس بن سوید د منافقت نه توبه::** روایت دې چه د دې نه پس جلاس توبه اوکړه او صحیح شو. دا د توبه خبره ډیره ممکن ده چه دامام محمد بن اسحاق خپله خبره وی. دا د حضرت کعب‌ خبره نه ده. والله اعلم. او په روایت کښې دی چه جلاس بن سویدبن صامت خپل میرنې خوئ حضرت مصعب‌ سره د قبا نه راتلو. دواړه په خرو سواره وو فرمائی چه ماته خو ویره وه چه چرته زما باره کښې د قرآن پاك آیت نازل نه شی یا په ما د الله ﷻ څه عذاب رانه شی یا په دې ګناه کښې زه دخپل پلار سره شریك نه کړې شم. نوزه نیغ د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم او ټوله خبره مې ورته سره د خپلې ویرې اوکړه. په ابن جریر کښې د حضرت ابن عباس‌ نه روایت دې چه حضور ﷺ د یوې سوریدارې ونې لاندې تشریف ایخودې وو وئی فرمائیل چه اوس به تاله یو سړې راشی او تاته به دا شیطان ګوری خو خبردار ته هغه سره خبرې مه کوه. هم هغه وخت یو انسان د ګکو سترګووالا راغلو. حضور ﷺ هغه ته اوفرمائیل ته اوستا ملګری ماته کنځلې ولې کوی. هغه هم په هغه وخت لاړو او خپل ټول ملګری راوستل ټولو قسمونه اوخوړل او وئیل چه مونږ خو داسې خبره نه ده کړې. تردې چه حضور ﷺ هغوی معاف کړل بیا دا آیت نازل شو.

**د وَهَمُّوا۟ بِمَا لَمْ يَنَالُوا۟ مطلب ::** دا په دې کښې چه کوم فرمائیلې شوی دی چه هغوی کومه اراده اوکړه پوره نه شوه. دې نه مراد د جلاس هغه اراده ده چه خپل میرنې خوئ چا چه د حضور ﷺ په خدمت کښې خبره اوکړه قتل کړی. یو قول دا هم دې چه عبدالله بن ابی پخپله د حضور ﷺ د قتل کولو اراده کړې وه. (۲) دا قول هم دې چه بعضې خلقو اراده کړې وه چه دې به سردار جوړکړوخو رسول الله ﷺ راضی نه شو. دا هم روایت دې چه د لسو نه پورته پورته کسانو د غزوه تبوك په لارکښې حضور ﷺ ته دهوکه ورکولو سره قتل کول غوښتل. نوحضرت حذیفه‌ فرمائی چه زه او حضرت عمار‌ د حضور ﷺ اوښې سره وراندې

---

۱) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة المنافقون باب قوله ﴿ولله خزائن السموات والارض...﴾:۴۹۰۶.

۲) الطبری: ۱۴/۳۶۳.



روستو وو یو به پرې نیولو او یو به شړله. مونږ په عقبه کښې وو چه دولس کسان راغله او مخونه نې پټ کړي وو اوښه نې راګیره کړه. حضورﷺ هغوی ته د مقابله چغه اووهله هغوی شاته اونه کتل او منډې کړې. نبی کریمﷺ مونږ ته اوفرمائیل تاسو دوی اوپیژندل؟ مونږ ونیل نه خود هغوی سورلئی زمونږ په نظر کښې دی. نبی کریمﷺ اوفرمائیل دا منافقان وو اود قیامته پورې به نفاق د دوی په زړه کښې وی. تاسو ته پته ده چه دوی په کومه اراده راغلی وو؟ مونږ ونیل چه نه. ونې فرمائیل د الله ﷻ رسولﷺ په عقبه کښې خفه کولو او تکلیف رسولو د پاره. مونږ ونیل حضورﷺ! د هر یو قوم ته اووایه چه د هر یو قوم کوم یو سړې په دې کښې شرکت کړی وی هغوی دې مړه کړي. حضورﷺ اوفرمائیل چه نه ګنی خلق به خبرې کوی چه محمدﷺ اول هم په دې خلقو سره د دښمن مقابله اوکړه او په دوی سره نې فتح حاصله کړه اوبیائې خپل ملګری هم قتل کړه. نبی کریم ﷺ هغوی ته خیرې اوکړې چه یاالله د دوی په زړونو باندې پولې راوخیژوې.(۱)

**په نبی کریم ﷺ د حمله کوونکو رسوائی:** اوپه روایت کښې دی چه د غزوه تبوك نه په واپسئ کښې نبی کریمﷺ دا اعلان اوکړو چه زه به دعقبه په لارځم څوك هم په دغه لار رانشئ. حضرت حذیفهؓ د اوښې جلب نیولې وو اوحضرت عمارؓ وریسې شاته شړله چه یوه ډله په خپلو اوښو سواره راغله. حضرت عمارؓ د هغوی سورلئی وهل شروع کړه. اوحضرت حذیفهؓ د حضور ﷺ په حکم باندې اوښه لاندې طرف ته روانه کړه.کله چه لاندې میدان ته اورسیدل نو حضورﷺ داوښې نه راکوزشو په دې کښې عمارؓ هم واپس راغلو.حضورﷺمعلومات اوکړوچه دا خلق څوك وو اوموپیژندل. حضرت عمارؓ ونیل چه مخونه خو نې پټ وو ولې سورلئی پیژندلې شوې. تپوس نې اوکړو د دوی اراده څه وه معلومه ده؟ جواب ورکړې شو چه نه.حضورﷺ اوفرمائیل چه دوی غوښتل چه شور ساز کړی زمونږ اوښه اوویرېږي .اومونږ راګذار کړی.دیونه حضرت عمارؓ دعقبه والوږ دشمیر تپوس اوکړونوهغه ونیل مونږ څوارلس یو.حضور ﷺ او فرمائیل که ته هم په هغوی کښې وې نوپنځلس به وو. حضورﷺ په دوی کښې د دریو کسانوعذر قبول کړو.هغوی اوونیل والله نه مونږ د چا آواز اوریدلې اونه مونږ ته د قوم د څه بدې ارادې علم وو.حضرت عمارؓ فرمائی چه باقی دولس کسان د الله ﷻ اود هغه رسول ﷺ سره جګړه کونکی دی په دنیاکښې هم اوپه آخرت کښې هم.(۲) امام محمد بن اسحاق رحمه الله په دوی کښې د ډیرو کسانو نومونه هم خودلې دی. والله اعلم په صحیح مسلم کښې دی چه د اهل عقبه نه یو سړی سره د حضرت عمارؓ څه تعلق وو نو هغه ته نې قسم ورکړو او د اصحاب عقبه د تعداد معلومات نې ترې اوکړو.خلقو هم ده ته اوونیل او اوښایه نو هغه اوونیل مونږ ته معلومه شوه چه هغه څوارلس وو اوکه ما هم په کښې شامل کړې نو پنځلس شو.په دوی کښې خودولس د ا لله تعالی اود هغه د رسولﷺ دښمنان وو اود دریو کسانو په باره کښې قسم چه نه مونږ څه آواز اوریدلې اونه څه اعلان اونه د دغه خلقو د ارادې مونږ ته څه علم دی. په دې وجه معذوره اوساتلې شو. د ګرمئ موسم وو اوبه ډیرې کمې وې حضورﷺ فرمائیلې وو چه مانه وړاندې هلته څوك هم اونه رسی خو په دې باندې هم څه خلق رسیدلې وو حضورﷺ په هغوی لعنت اوونیلې(۳) حضورﷺ اوفرمائیل چه زما په ملګروکښې دولس منافقان دی چه نه به جنت ته خې اونه به د هغې بونې دوی ته اورسی. د اتو په زړونوبه آتشین پولې وې چه سینې ته به رسیدلې وی او دې به هلاك کړی(۴) هم په دې وجه به حضرت

(۱) دلائل النبوة:۵/۲۶۰.
(۲) احمد:۵/۴۵۳وسنده حسن. هیثمی دَدې سند رجالوته ثقه وئیلی. اوګورنې مجمع الزوائد:۶/۱۹۵.
(۳) صحیح مسلم کتاب صفات المنافقین باب صفات المنافقین واحکامهم:۲۷۷۹،احمد:۵/۳۹۰
(۴) صحیح مسلم حواله سابقه: احمد:۴/۲۶۲، ابوداؤد:۴۶۶۶.

حذیفه ﷺ ته د رسول الله رازدار وئیلې کیده حضورﷺ صرف هم ده ته د دغه منافقانو نومونه خودلي وو. والله اعلم.

**په رسول کریم ﷺ باندې دحمله کوونکو نومونه::** په طبراني شریف کښې د هغوی نومونه دا دي: معتب بن قشیر، ودیعه بن ثابت، جدبن قیس، عبدالله بن نبتل بن حارث کوم چه د عمرو ابن عوف د قبیلې وو اوحارث بن یزید طائی، اوس ابن قیظی، حارث بن سوید، سعد بن زراره، قیس بن فهد، سوید اوداعس قبیله چه د بنوحنبلي او قیس بن عمروبن سهل، زید بن لصیب، سلاله بن الحمام دا دواړه د قبیله قینقاع دي. دا ټول په ښکاره مسلمانان جوړشوي وو. په دې آیت کښې دې نه پس فرمائیلې شوي دي چه هغوی هم د دې خبرې بدله واخسته چه هغوی ته الله ﷻ د خپل فضل نه د خپل رسولﷺ په لاس مالداران جوړکړه. که په هغوی باندې د الله ﷻ پوره فضل شوې وو نو هغوی نه به هدایت هم نصیب شوې وو.لکه څنګه چه حضورﷺ انصاروته فرمائیلې وو چه آیا ماتاسود ګمراهۍ په حالت کښې نه وې موندلې بیاالله ﷻ زماد وجه نه ستاسو لارخودنه اوکړه. تاسو ګډوډوئي الله ﷻ زما په وجه په تاسوکښې محبت واچولو.تاسو فقیران اوبې نوا خلق وئې او الله ﷻ زماپه سبب تاسو غنیان او مالداران جوړکړئې. د هر یو سوال په جواب کښې به انصارو رضی الله عنهم فرمائیل چه بې شکه د الله ﷻ اود هغه د رسول ﷺ د دې نه ډیر احسان دې. (۱)

**دحملې وجه څه وه ؟::** لنډه داچه داخلق بغیرد څه وجه اوقصور په دښمنۍ اوبې ایمانۍ باندې اودریدل. لکه چه په سورة بروج کښې دی د مسلمانانونه د دې کافرانو بدله اخستل صرف د هغوی د ایمان په وجه وه(۲)په حدیث شریف کښې دی چه ابن جمیل صرف د دې خبرې بدله اخستله چه هغه فقیر وو او الله ﷻ غنی کړو(۳)

**اوس لاهم د توبې موقع شته ؟::** بیا فرمائي چه که دوی اوس هم توبه اوکړي نود دوی په حق کښې بهتر ده اوکه هغوی په خپله هم دې طریقه باندې کلك ولاړوی نودوی ته به په دنیاکښې هم سخته سزا وی د قتل نه اود غم او خفګان د وجه اود دوزخ ذلیله اوښکته کونکې ناقابل برداشت عذابونوسره هم، په دنیاکښې به څوك هم نه وی چه د دوی طرفداری اوکړي د دوی امداد اوکړي د هغوی به کار راشي اود هغوی نه بدی ختمه کړي یا څه نفع وراورسوی بې یاراو مددګار به پاتې شي.

وَمِنْهُمْ مَّنْ عٰهَدَ اللّٰهَ

اوخینی ددوی نه | هغه خلق دی | چی وعده ئې کړی وه د الله سره
| اوپه دوی (منافقانو) کښې خینې هغه څوک دې چه د الله سره

لَئِنْ اٰتٰىنَا مِنْ فَضْلِهٖ لَنَصَّدَّقَنَّ وَلَنَكُوْنَنَّ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ۝

که چری | راکړه مونږ ته (الله) | د فضل خپل نه | نو مونږ به خیرات اوکړو | او شو به مونږ | د نیکانو نه
وعده کړې وه که الله ﷻ مونږ ته د خپل فضل(مال) نه راکړل نو مونږ به خیراتونه کوو او د نیکانو څنې به شو

فَلَمَّآ اٰتٰىهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ بَخِلُوْا بِهٖ وَتَوَلَّوْا

خو کله چې ورکړو الله هغوی ته | د فضل خپل نه | نو بخل ئې شروع کړو | په هغې سره | او مخ ئې واړوو د وعدې خپلې نه
خو چه کله ورته الله ﷻ د خپل فضل (مال) نه ورکړل نو د هغې په خرچ کولو ئې بخل اوکړو نو | او د وعدې نه ئې

---

(۱) صحیح بخاری کتاب المغازی باب غزوة الطائف فی شوال سنة ثمان: ٤٣٣٠، صحیح مسلم: ١٠٦١.
(۲) ٨٥/البروج:٨.
(۳) صحیح بخاری کتاب الزکاة باب قول الله ﴿وفی الرقاب والغارمین وفی سبیل الله﴾:١٤٦٨، صحیح مسلم: ٩٨٣.

وَّهُمۡ مُّعۡرِضُوۡنَ﴿۷۶﴾ فَاَعۡقَبَهُمۡ نِفَاقًا فِىۡ قُلُوۡبِهِمۡ اِلٰى يَوۡمِ

اودی هغوئ ا مخ اړونکی انو پیدا کړو الله هغوئ لره ا منافقت ا په زړونو د هغوئ کښې ا د هغې ورځې پورې ا

مخ واړولو ا او (د زکاة ورکولو نه) انکاریان شو ا دی په نتیجه کښې الله ﷻ د دوی په زړونو کښې داسې نفاق واچولو

يَلۡقَوۡنَهٗ بِمَاۤ اَخۡلَفُوا اللّٰهَ مَا

چې یو خاتې کیږی به هغوئ د هغه سره ا په سبب د هغې ا چې خلاف کړې وو هغوئ د الله ا د هغه خبرې

کوم چه به تر قیامته پورې باقی وی ا ځکه چه دوی د الله ﷻ سره د هغه څه وعده خلافی

وَعَدُوۡهُ وَبِمَا كَانُوۡا يَكۡذِبُوۡنَ﴿۷۷﴾ اَلَمۡ

چې وعده ئې کړې وه د هغه سره ا او په سبب د هغې چې وو هغوئ ا چې دروغ به ئې ونیل ا ایا

او کړله کومه وعده چه ئې ورسره کړې وه ا او ددې وجې دروغ به ئې وئیل ا ایا دوی ته پته نه لګی

يَعۡلَمُوۡۤا اَنَّ اللّٰهَ يَعۡلَمُ سِرَّهُمۡ وَنَجۡوٰىهُمۡ

معلومه نه ده دې خلقو ته ا چې بیشکه الله ا پوهیږی په پټو رازونو ددوئ ا او د غوږ په خبرو ددوئ

چه الله ﷻ د دوی په پټو او په ښکاره خبرو باندې پوهیږی ا (او ایا دوی په دې نه پوهیږی چه)

وَاَنَّ اللّٰهَ عَلَّامُ الۡغُيُوۡبِ﴿۷۸﴾ۚ

او بیشکه الله ا ښه خبردار دې ا په ټولو غیبی خبرو باندې ا

الله ﷻ په پټو (خبرو او کارونو باندې) پوهیږی ا

**قوله تعالى:: وَمِنۡهُمۡ مَّنۡ عٰهَدَ اللّٰهَ**

**چه دعا منظوره شوه نو خپله وعده ئې هیره کړه:-** بیان کولې شی چه په دې منافقانو کښې هغه هم دی چا چه وعده کړې وه که زه الله ﷻ مالدار کړم نو زه به ډیر سخاوت کوم او نیک به جوړیږم خو چه کله الله ﷻ هغه مالدار او خوشحاله جوړ کړو هغه وعده خلافی اوکړه او بخیل جوړ شو. دڅه د سزا په وجه چه الله ﷻ د هغه په زړه کښې د همیشه د پاره نفاق واچولو.

**دا ایت مبارک دچا په باره کښې دې ؟::** دا آیت دثعلبه بن حاطب انصاری باره کښې نازل شوې دې. هغه رسول الله ﷺ ته درخواست اوکړو چه زما دپاره د مالدارئ دعا اوکړئ. حضور ﷺ اوفرمائیل کم مال د کوم چه شکریه اداکړې د هغه ډیر نه ښه دې چه د خپل طاقت نه زیات وی. هغه بیا درخواست اوکړو نو حضور ﷺ اوفرمائیل چه ته خپل حال د الله ﷻ د نبی ﷺ په شان ساتل نه خوښوې؟ والله که ما غوښتل نو داغرونه به د سرو زرو جوړ شوی ماسره ګرځیدل. هغه ونیل والله زما اراده ده چه که زه الله ﷻ مالدار کړم نو زه به ښه سخاوت کوم او د هریو حق به ادا کوم. حضور ﷺ د هغه دپاره د مال د برکت دعا اوکړه. د هغه په چیلو کښې داسې زیاتوالې کیدو لکه چه چینجی زیاتیږی. تردې چه مدینه منوره د هغه د خاررو د پاره تنګه شوه. دې صحرا اوداګومیرو ته اووتلو د مازیګر او ماسپخین مونځ خو به ئې په جمع سره کولو او باقی مونځونه به ورته په جمع نه ملاویدل. په خاررو کښې نور هم زیاتوالې اوشو نو دې لږ نور هم لرې لاړو. اوس دجمعې نه بغیر ټول مونځونه د جمع د هغه نه پاتې شو. مال نور هم زیات شو نو کیده کیده چه دجمعې مونځ هم ترې پاتې شو. د تلوراتلو والا د قافلې نه به ئې تپوس کولو چه د جمعې په ورځ څه بیان اوشو.

**د ثعلبه بن حاطب واقعه::** یو ځل حضور ﷺ د هغه د حال تپوس اوکړو نو رسول الله ﷺ ته هغه حال بیان

شو. حضورﷺ د افسوس اظهاراوکړو. دیخوا آیت نازل شو چه د هغه د مال نه صدقه واخلئ اود صدقې احکام هم بیان شو. حضورﷺ دوه کسان په کوموکښې چه یو دقبیلې جهینه اودویم د قبیله سلیم نه دی تحصیلداران جوړکړه اودصدقې اخستلود احکامو لیکلې شوې پروانه ئې ورکړه وئې لیګل چه د ثعلبه نه اود فلانکې بنی سلیم قبیلې نه صدقه راوړئ. دا دواړه ثعلبه له لاړل اود رسول اللهﷺ فرمان ئې اورسولواوصدقه ئې ترې اوغوښتله نو هغه اوونیل چه واه واه دا خو سمه جزیه ده خود جزيې خوږ رو اودا خو بالکل داسې دی لکه دکافرانو نه جزیه اخستې شی دا څه خبره شوه. ښه ده اوس تاسو لاړشئ اوبیا واپس راشئ. باقی بل سړې کوم چه سلمی وو هغه ته چه کله معلومه شوه نوهغه خپل ښه څاروی را اوویستل اود هغې سره پخپله راوړاندې شو. هغوی چه دا څاروی اوکتل نو وئې وئیل چه نه خودا څاروی زمونږ داخستلو لائق دی اونه په تاداً ورکول واجب دی. هغه وئیل چه زه خو په خپله خوشحالئ باندې خپل بهترین څاروی ورکول غواړم. تاسو دا قبول کړئ خوآخر هغوی دا واخستل او د نورو نه ئې هم واخستل او په واپسئ باندې بیا ثعلبه ته راغلل. هغه وئیل چه ماته خو هغه پرچه لږه اولولئ کومه چه تاسو ته درکړې شوې ده.لوستلو سره ئې اوونیل چه رووره داخو صفاجزیه ده اوپه کافرانو باندې چه کوم ټیکس مقررکولې شی داخو هم هغه شان دی. ښه ده تاسو لاړشئ زه به سوچ اوکړم هغوی واپس لاړل او د دوی په کتلو سره حضورﷺ په ثعلبه باندې افسوس ښکاره کړو اودسلمی سړی دپاره ئې دبرکت دعا اوکړه.اوس هغه دواړوکسانوهم د ثعلبه اوسلمی واقعه بیان کړه نو الله ﷻ عزوجل وعلا دا آیت نازل کړو.

**دثعلبه دصدقې نه د رسول کریمﷺ ، ابوبکرؓ،عمر فاروقؓ او عثمانؓ انکار**:: د ثعلبه یو نزدې خپلوان چه دا هر څه واوریدل نو ثعلبه له لاړو او ورته ئې اوونیل او آیت ئې هم واورولو. دې حضرت نبی اکرمﷺ له راغلو اوعرض ئې اوکړو چه زما هغه صدقه قبوله کړه. حضورﷺ اوفرمائیل چه اللهﷻ زه ستا د صدقې اخستلونه منع کړې یم. ده په خپل سر خاورې اچولې، نو حضورﷺ اوفرمائیل چه دا هرڅه خو تاپخپله کړی دی. ماخوتاته وئیلی وو خوتا نه منل. دې واپس خپل ځای ته لاړو. دحضورﷺ ترانتقال پورې د ده هیڅ څیز قبول نه کړې شو. بیا دې د حضرت ابوبکرصدیقؓ حکومت کښې راغلو او وئې وئیل چه زما کوم عزت حضورﷺ سره وو اوزما چه کومه مرتبه په انصاروکښې وه هغه تاسو ښه پیژنئ تاسوزما صدقه قبوله کړئ. حضرت ابوبکرؓ اوفرمائیل چه کله حضورﷺ نه ده قبوله کړې نو زه څوك یم؟ هغوی هم انکار اوکړو.کله چه د هغوی هم انتقال اوشواوعمرؓ مسلمانانو حاکم جوړ شونودې راغلواوعرض ئې اوکړوچه امیرالمؤمنین تاسو زما صدقه قبوله کړئ.هغوی جواب ورکړوچه کله حضورﷺ نه ده قبوله کړې اوبیا خلیفه اول نه ده قبوله کړې نواوس ئې زه څنګه قبلولې شم.
نوهغوی هم په خپل دور خلافت کښې د هغه صدقه قبوله نه کړه. بیا خلافت حضرت عثمانؓ ته حواله شونودا ازلی منافق بیا راغلو او منت او زاری شروع کړه خوهغوی هم دا جواب ورکړو چه پخپله حضورﷺ اود هغه دوو خلیفه ګانو ستا صدقه قبوله کړې نه ده نو زه ئې څنګه قبوله کړم نو قبوله ئې نه کړه. دغه شان دا سړې هلاك شو. محقق ابن کثیر کښې حدیث پاك ته واه او متن ته ئې باطل وئیلی دی(۱) اول خوئې وعدې کړې وې دسخاوت کولواو هغه هم په قسمونوخوړلو سره بیا واوریدو او د سخاوت په عوض کښې بخل اختیارکړو او وعده خلافی ئې اوکړه. د دې دروغو او وعده خلافئ په بدله کښې د هغه په زړه کښې نفاق ورکلك شو چه د هغه وخت نه د هغه په پوره ژوندکښې هغه سره وو.په حدیث شریف کښې هم دی چه د منافق درې علامې دی چه کله خبره کوی دروغ وائی کله چه

(۱) ابن جریر او ابن ابی حاتم

وعده کوی د هغې خلاف کوی اوکه امانت ورکړې نو خیانت کوی(١) ایا دوی نه پوهیږی چه الله ﷻ د ښکاره اوپټو زړونو ارادو اودسینې د پټورازونو عالم دې. هغه ته د اول نه معلومه وه چه دا خالی زبانی بکواس دې چه مالدار شی نوداسې خیراتونه به کوم اوداسې شکریه به اداکوم اوداسې نیکنی به کوم خو په زړونوباندې نظر ساتونکې رب ښه پیژنی چه دوی به په مال کښې مست شی اود دولت په راتلو باندې به بدمعاشنی ناشکری او بخل کوی. هغه د هریو حاضر او غائب پیژندونکې دې هغه د هرېټ او ښکاره نه خبر دې. ظاهر او باطن ټول په هغه باندې ښکاره دی.

اَلَّذِيْنَ يَلْمِزُوْنَ الْمُطَّوِّعِيْنَ

هغه کسان اچې عیب لګوی ا په خوښئ سره مال ورکونکو باندې

الله ﷻ اهغه منافقان (په مؤمنانو کښې) په خپله خوښئ خرچ کونکو

مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ فِي الصَّدَقٰتِ وَالَّذِيْنَ لَا يَجِدُوْنَ اِلَّا جُهْدَهُمْ

دمومنانونه ا په صدقو کښې او په هغه کسانو باندې اچې نهٔ مومی امګر اکوشش خپل

باندې ملامتیا وائی او (په مؤمنانو کښې) هغه کسان چه هغوی دخپل وس مطابق خرچ کوی (اګرچه لږ وی)

فَيَسْخَرُوْنَ مِنْهُمْ سَخِرَ اللّٰهُ مِنْهُمْ وَلَهُمْ

نو دوئ ټوقې کوی ا په هغوئ پورې اټوقې کوی الله اپه دغه ټوقو کونکو پورې ا اودې دهغوئ دپاره

نومنافقان په هغوی پورې ټوقې کوی الله ﷻ به هغوی ته د هغې سزا ورکړی او د هغوی دپاره

عَذَابٌ اَلِيْمٌ﴿٧٩﴾

عذاب ادرد ناک ا

دردناک عذاب دې ا

قوله تعالى:: اَلَّذِيْنَ يَلْمِزُوْنَ الْمُطَّوِّعِيْنَ

**دمنافقانو بدې خبرې اود مسلمانانو زړه بیلل:** داهم دمنافقانو یوخراب خونی دې چه دهغوی د ژبې نه څوك هم نه شی بچ کیدلې، نه سخی اونه بخیل، دا عیب چه دا بدې خبرې کونکی خلق خراب دی. که یو سړې یو لوئ رقم د الله ﷻ په نوم ورکړی نو دوی هغه ته ریاکار وائی اوکه څوك مسکین د خپلې غریبنی په وجه څه لږشان څیز ورکړی نو دوی پوزه اوچونړی ، تروه (مونجه کړی) او وائی چه څه د ده د دې لږڅیز هم الله ﷻ اوږې دې. کله چه دصدقاتو ورکولوآیت نازل شو نوصحابه کرامو ﷢ به خپلې خپلې صدقې راخستې اوحاضریدل به. یوصاحب ډیرې زیاتې پیسې راوړې نودې منافقانوورته دریاکارخطاب ورکړو اویوصاحب غریب مسکین سړې وو صرف یو صاع غله نی راوړه نو هغه ته نی اووئیل چه د ده د دې صدقې الله ﷻ ته څه ضرورت وو؟ د دې بیان په دې آیت کښې دې. (٢)

**د صحابه کرامو د اخلاص انتهاء::** یوځل حضور ﷺ په بقیع کښې اوفرمائیل چه څوك صدقه ورکړی زه به د قیامت په ورځ د الله ﷻ په وړاندې د هغه ګواهی ورکوم. دغه وخت کښې یو صحابی ﷛ د خپل پټکی نه څه ورکول غوښتل خو بیا نی راغونډکړو په دې کښې یو سړې چه تور رنګ نی وو وړوکې قد نی وویوه اوښه راوسته او راوړاندې شو چه د هغې نه ښه اوښه په ټول بقیع کښې نه وه. ونی وئیل

---

(١) صحیح بخاری کتاب الایمان باب علامات المنافق:٣٣، صحیح مسلم:٥٩، ترمذی:٢٦٣٣.

(٢) صحیح بخاری کتاب زکوة باب اتقوا النارولوبشق تمرة والقلیل من الصدقة....:١٤١٥، صحیح مسلم:١٠١٨.

یارسول الله ﷺ دا د الله ﷻ په نوم خیرات دي. حضور ﷺ اوفرمائیل ډیره ښه ده. په دې کښې چا اوونیل چه د ده نه خودا اوښه ښه ده. حضور ﷺ واوریده نو وئې فرمائیل چه ته درغږن ئې دې تاته اود دې نه درې چنده ښه دي. افسوس! په سوونو اوښانو والا تاسو غونډي خلقو باندې افسوس درې خل ئې داسې اوفرمائیل خو هغه چه خپل مال داسې داسې کړي او په لپوډ کولو سره حضور خپل ښي او ګس طرف ته اشاره اوکړه یعني د الله ﷻ په لارکښې په هر نیك کار کښې خرچ کوئي. بیا ئې اوفرمائیل چه هغوی خلاصې بیاموندلو چه د کم مال والا دی اود زیات عبادت والاوی. (۱)

**دصحابه کرامو په حق کښې دمنافقانو بکواس:** :عبدالرحمن بن عوف ﷺ څلویښت اوقیه سپین زر راوړل او یوغریب انصاري یو صاع غله راوړه. منافقانو یو ته ریاکار او د بل صدقې ته سپك اوونیل. یو خل د حضور ﷺ په حکم باندې خلقو د مال خیرات ورکول او راجمع کول شروع کړه. یو صاحب یو صاع کهجورې راوړې او وئې وئیل چه حضور ﷺ ماسره د کهجورو دوه صاع وو یوما د خپل خان اود خپلو بچودپاره حصار کړو او یومې راوړو. حضور ﷺ اوفرمائیل چه دا هم په دې جمع شوی مال کښې واچوئې په دې باندې منافقانو بکواس شروع کړو چه الله ﷻ اود هغه رسول ﷺ د دې نه بې پرواه دي.

**د عبدالرحمان بن عوف سخاوت:** :عبدالرحمن بن عوف ﷺ اوفرمائیل چه ماسره سل اوقیه سره زر دی هغه ټول صدقه کوم. عمر ﷺ اوفرمائیل چه په هوش کښې هم ئې؟ هغه جواب ورکړو چه او په هوش کښې یم. وئې فرمائیل بیا څه کوې. هغه اوفرمائیل واوره ماسره اته زره دی په کوموکښې چه زه څلور زره الله ﷻ ته قرض ورکوم او څلور زره د خپل خان د پاره ساتم. حضور ﷺ اوفرمائیل چه په تادې برکت وی کوم چه تا خان له اوساتلې اوکوم چه دې خرچ کړې. منافقانو په دې باندې خبرې جوړول شروع کړې. چه د خپل سخاوت خودلو د پاره پلنیرې اوخلقوته دومره پیسې ورکوی. نو الله ﷻ دا آیت نازل کړو چه د لوئ رقم او د وړوکی رقم صداقت اود دې منافقانو دا موذی حرکت ښکاره کړی. (۲)

**منافقان هیڅ څوک نه معاف کوی:** :دبنوعجلان عاصم بن عدی ﷺ هم دې وخت کښې ډیرلوئ رقم خیرات کړې وو سل وسق کهجورې ئې ورکړې وې. منافقانو دا په ریاکارئې باندې محمول کړې وه. د خپلې خوارې مزدورئې نه لږ شان خیرات کونکې ابوعقیل ﷺ وو دې د قبیلې بنوانیف یوسړې وو د هغه په یوصاع خیرات باندې منافقانو خندا او مسخرې کړې وې. په یوروایت کښې دی چه حضور ﷺ دا چندد د مجاهدینو د یوې ډلې په جهاد باندې د روانولو د پاره کړې وه. په دې روایت کښې دی چه حضرت عبدالرحمن ﷺ دوه زره ورکړې وې او دوه زره ئې ساتلې وې. دا حضرت ابوعقیل ﷺ وو چه ټوله شپه به ئې په خپله شا بوج اوړلو د هغه نوم حباب وو. اویوقول دې چه عبدالرحمن بن ثعلبه وو. د منافقانو په دې مسخروکښې الله ﷻ هم د هغه نه داسې بدله واخسته. ددې منافقانو دپاره د آخرت دردناك عذاب دې. اود هغوی د عملونو د دې عملونو په شان خرابه بدله ده.

| اِسْتَغْفِرْ | لَهُمْ | اَوْلَا تَسْتَغْفِرْ | لَهُمْ | اِنْ تَسْتَغْفِرْ |
|---|---|---|---|---|
| ابښنه اوغواړه | دپاره دهغوئ | یاابښنه مه غواړه | دپاره دهغوئ | که ته ښښنه اوغواړې |
| ا که ته د دوی دپاره ښښنه اوغواړې اوکه اونه غواړې ا که ته د دوی دپاره | | | | |

(۱) احمد: ۳۴/۵، مجمع الزوائد: ۱۲۴/۳.
(۲) الطبری: ۳۸۳/۱۴.



| لَهُمْ | سَبْعِيْنَ مَرَّةً | فَلَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ | لَهُمْ ط | ذٰلِكَ | بِاَنَّهُمْ | كَفَرُوْا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دپاره دهغوی | اویا | خله | انوهرګز به اونه بښي الله | هغوی لره | دانه بښنه | په سبب دهغې چې هغوی | کفر اوکړو |
| اویا کرته بښنه اوغواړې نو هم الله ﷻ دوته مغفرت نه کوی ا اودا (نه بښل د دې وجې نه دې چې دوی په الله ﷻ او د هغه په | | | | | | |

| بِاللّٰهِ | وَرَسُوْلِهٖ ط | وَاللّٰهُ | لَا يَهْدِي | الْقَوْمَ | الْفٰسِقِيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| په الله سره | اودرسول دهغه نه | اوالله | نه ښائي لار | قوم | فاسق ته |
| رسول باندې کړې دې ا اوالله تعالی کافرانو ته (د جنت) خودنه نه کوی ا | | | | | |

قوله تعالیٰ: اِسْتَغْفِرْ لَهُمْ اَوْ لَا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ ط

دمنافقانودپاره استغفار کول او نه کول برابردي:- فرمانې چه دا منافقان د دې قابل نه دی چه ته د دوی دپاره اې نبی ﷺ ابښنه غواړې. يوځل نه چه که ته اوياځل هم ددوی دپاره بښنه اوغواړې نو الله ﷻ به دوی اونه بښي. دا داوياو چه کوم ذکر دی دې نه مرادصرف زياتوالې دې که هغه اوياو نه کم وی اوکه زيات وی.بعضو وئيلی دی چه دې نه مراد هم د اوياؤ عدد دې.نوحضورﷺ اوفرمائيل چه زه خو به د هغوی د پاره د اوياؤ نه زيات استغفار کوم چه الله ﷻ دوی اوبښي. نو الله ﷻ په بل آيت کښې اوفرمائيل چه د دوی دپاره ستا استغفارکول د نه کولوبرابردی.د عبدالله بن ابی منافق ځوئ د حضورﷺ په خدمت کښې عرض اوکړو چه زما پلار د زنکدن په حالت کښې دې زما خواهش دې چه تاسو هغوی له تشريف راوړئ اود هغه د جنازې مونځ هم ادا کړئ. حضورﷺ تپوس اوکړو ستا نوم څه دې هغه وئيل حباب. حضورﷺ اوفرمائيل ستا نوم عبدالله دې حباب خود شيطان نوم دې. اوس حضورﷺ هغه سره شو دهغه پلار ته ئې د خپلې خولې قميص ورواغوستلو. د هغه د جنازې مونځ ئې اوکړو. حضورﷺ ته وئيلې شوې چه تاسودده په جنازه باندې مونځ اداکوئ.حضورﷺ اوفرمائيل چه الله ﷻ اوياؤ ځل استغفارسره نه بخښل فرمائيلی دی نو زه به اوياځل، بيا اوياځل او بيا اويا ځل استغفارکوم.(١)

| فَرِحَ | الْمُخَلَّفُوْنَ | بِمَقْعَدِهِمْ | خِلٰفَ | رَسُوْلِ اللّٰهِ | وَكَرِهُوْا |
|---|---|---|---|---|---|
| خوشحاله شو پاتې شوی خلق | په کيناستلو خپلو سره | په ملګرتيا نه کولو اد | رسول دالله | اوبد اوګڼړل هغوئ | |
| کوم کسان چه (دجهاد نه روستو) پاتې شوی دی پخپله ناسته باندې خوشحاليږي چه د رسول الله نه پاتې شوی دی | | | | | |

| اَنْ يُّجَاهِدُوْا | بِاَمْوَالِهِمْ | وَاَنْفُسِهِمْ | فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ | وَقَالُوْا |
|---|---|---|---|---|
| چې جهاداوکړی | په مالونوخپلوسره | اوپه نفسونوخپلوسره | په لار د الله کښې | اووئيل هغوئ |
| اودالله په لار پخپلومالونو اوجانونو سره جهاد کول بد ګڼړی او (په خپل مينځ کښې يوبل ته) وائی (دا | | | | |

| لَا تَنْفِرُوْا | فِي الْحَرِّ ط | قُلْ | نَارُ جَهَنَّمَ | اَشَدُّ | حَرًّا ط |
|---|---|---|---|---|---|
| مه اوځئ | په ګرمئ کښې | اورته | اووايه | اوردوزخ | زيات سخت دی | په لحاظ دګرمئ سره |
| سخته ګرمی ده) په ګرمئ کښې مه ځئ اته ورته اووايه د جهنم اور (د دنيا د ګرمئ نه) زيات سخت دې | | | | | |

(١) الطبری: ٣٩٦/١٤.

| لَوْ | كَانُوْا | يَفْقَهُوْنَ ۝ | فَلْيَضْحَكُوْا | قَلِيْلًا | وَّلْيَبْكُوْا |
|---|---|---|---|---|---|
| کاش | چې وې دوئ | چې پوهیدلې | پس اودې خاندي دوئ لږ | | او اوبه ژاړي |

کاش که دوی پوهیدلې ‹نو داسې خبرې به ئې نه کولې› دوی دی ‹په دنیا کښې› لږ غونډې اوخاندي او ‹په اخرت

| كَثِيْرًا | جَزَآءً | بِمَا كَانُوْا | يَكْسِبُوْنَ ۝ |
|---|---|---|---|
| ډیر | دا سزا ده | په سبب دهغه عمل | چې دوئ کولو |

کښې به› ډیر اوژاړي دا ‹ژړل› د دوی د کړو سزا ده

قوله تعالى:: قُلْ نَارُ جَهَنَّمَ اَشَدُّ حَرًّا

**دنمر دګرمئ نه بچ کیدونکي ددوزخ اُور ولې نه یادوي:** کوم خلق چه په غزوه تبوک کښې حضور ﷺ سره نه وو تلی اوهم په کورکښې پاتې شوې وو، چاته چه دالله ﷻ په لارکښې پخپل ځان او مال جهادکول ګران معلومیدو. چاچه د یو بل غوږونه ډک کړې وو چه په دې ګرمئ کښې به څنګه اوځو؟ یو طرف ته میوې پخې شوي دي اوسوري خواره شوي دي بل طرف ته ګرمې هواګانې چلیږي. نو الله ﷻ فرمائي چه ددوزخ اُورکوم طرف ته چه تاسو دخپل بد عمل په وجه روان ئې هغه خوددې ګرمئ نه ډیره ګرمې لري.

**ددنیا اورد جهنم د اور اویایمه حصه ده::** دا اُور خود هغه اوراویایمه حصه ده. لکه چه د بخاري او مسلم شریف په حدیث کښې دي[1] او په روایت کښې دي چه ستاسو دا اُور د دوزخ د اُور د اویاؤ اجزاؤ نه یو جزدې اوبیا هم دادسمندر په اُوبووینځلې شوې دې ‹مرکړې شوې دې› ګنې نوتاسویه د دې نه هیڅ فائده هم نه وه حاصله کړې. [2]

**دجهنم د اور سختوالې::** حضور ﷺ فرمائي زرو کالوپورې د دوزخ اُور بل کړې شو نو سور شو بیا یو زر کالوپورې بل کړې شونو سپین شو اوبیا زروکالو پورې بل کړې شو نو تورشو. او هغه د تورې شپې په شان ډیر سخت توردې[3] یوځل حضور ﷺ آیت ﴿وَّقُوْدُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ﴾ تلاوت اوکړو اووئې فرمائیل چه زرکاله بلولوسره هغه سپین شو اوبیا زر کاله پورې بلولو سره سور شو اوبیا یوزر کاله بلولو سره تور شو او هغه د تورې شپې په شان دې. د هغې په شغلوکښې هم پرق نشته. په یوحدیث کښې دي چه که د دوزخ داُور یوبڅرې په مشرق کښې وی نود دې ګرموالې به مغرب ته اورسي[4] د ابویعلی په یوغریب روایت کښې دي چه په دې جمات کښې یولاکه بلکه د دې نه هم زیات سړې وی اوځوك دوزخی دلته سا واخلي نود هغه په ګرموالی به جمات او د جمات خلق ټول اوسوزي[5] او په حدیث شریف کښې دي چه په دوزخ کښې به د ټولونه د سپك عذاب والا هغه وی چه د هغه په دواړو پښوکښې به د اُور تسموسره دوه څپلئ وی په کوم سره چه به د هغه کهوپړئ خوټکیږي. او هغه به دا ګڼړي چه د ټولونه زیات عذاب هم په ما دې. سره ددې چه د ټولونه سپك عذاب به د هغه وی[6] قرآن پاك فرمائي چه هغه اُور داسې شغلې وهونکې دې چه څرمن اوباسي. او په آیاتونوکښې دي چه د هغوی په سرونو باندې به ګرمې اوبه اړوی په کوموسره چه به د هغه د خیټې ټول څیزونه اود هغه څرمن به اوسوزي[7] بیا به د

---

[1]) صحیح بخاری کتاب بدء الخلق باب صفة النار وانها مخلوقة: ٣٢٦٥، صحیح مسلم: ٢٨٤٣، موطاامام مالك: ٩٩٤/٢
[2]) احمد: ٢٤٤/٢، مسندحمیدی: ١١٢٩ (بتحقیقی وسنده صحیح)، ابن حبان: ٧٤٦٣.
[3]) ترمذی کتاب صفة اهل جهنم باب منه فی صفة النار وانها سوداء مظلمة: ٢٥٩١، ابن ماجه: ٤٣٢٠.
[4]) الطبرانی.
[5]) مسندابی یعلی: ٦٦٧٠، مجمع الزوائد: ٣٩١/١٠.
[6]) صحیح بخاری کتاب الرقاق، باب صفة الجنة والنار: ٦٥٦٢، صحیح مسلم: ٢١٣، احمد: ٢٧١/٤.
[7]) ٧٠/المعارج: ١٥.

اوسپنې په ستڅونوباندې د هغوی سرونه چقولې شي. هغوی چه د دې ځای نه اوځي هم دې ته به واپس کولې شي اوورته به وئیلې شي چه دسوزیدو عذاب اوڅکئ(۱) بل آیت کښې دی چه کوموخلقو زمونږ د آیاتونو انکار اوکړو هغوی به مونږ په سورکړې شوي اُورکښې واچوو د هغوی څرمنې به اوسوزیږي او مونږ به نې ورته نورې نورې وربدلوو دې د پاره چه هغوی ښه عذاب کړې شي.(۲)په دې آیت کښې هم فرمائیلې شوي دي که دوی پوهیدل نو په دې خبره به خبرشوي ووچه د دوزخ داُورګرمي او تیزي ډیره زیاته ده نویقینا په موسمي ګرمئ کښې به رسول الله ﷺ سره په جهادکښې په خوشحالئ خوشحالئ سره وتل اوخپل ځان اومال به نې د الله ﷻ په لارکښې قربانې کول. د عربویوشاعر وائي چه تاخپل عمر دګرمئ اویخنئ نه بچ کیدو کښې تیرکړوحالاتکه تاله خو لایق ووچه د الله ﷻ نافرمانونه بچ کیدې چه د دوزخ د اُورنه بچ شوې وې.اوس الله ﷻ د خراب باطن منافقان ویروي چه په دې لږ شان ژړ ندکښې خو چه دلته څومره خوارئ خاندئي خود هغه راتلونکي لوئ ژوندکښې د هغوی د ژړا هم ژړا ده چه کله به هم نه ختمیږي.

د حضورﷺ فرمان دې چه اې خلقو ژاړئ اوکه ژړا نه درځي په زېردستئ سره ژاړئ جهنمیان به ډیر زيات ژاړي اوتردې چه د هغوی په اننګو باندې به د نهرونو غوندې کندې جوړیږي. آخر اوښکې به ختمې شي او سترګې به نې وینې راوروي. د هغوی د سترګونه به دومره اوښکې او وینې بهیدلې وي که څوک په دې کښې کښتئ چلول غواړي نو چلولې به نې شي(۳) اوپه حدیث شریف کښې دي چه دوزخیان به په دوزخ کښې ژاړي او دومره به ژاړي چه د اوښکوختمیدو نه پس به پیپ راوتل شروع شي. دغه وخت کښې به د دوزخ څوکیدار هغوی ته اووائي چه اې بدبخت د رحم په ځای کښې خو تاکله هم نه دی ژړلې اوس دلته دا ژړا فریادکول فضول دي.بیا به دوی په اوچتواوچتو آوازونو جنتیانوته فریادونه کوي چه تاسو خلق خو زمونږ خپلوان اود قبیلې نې واورئ مونږ د قبرونو نه تږي راواوچت کړې شوي یو او بیا د حشر په میدان کښې هم تږي وو اوترننه پورې دلته هم تږي یو. په مونږ څه رحم اوکړئ لږې شان اوبه زمونږ په حلق کښې راواړوئ. کوم رزق چه الله ﷻ تاسوله درکړې د هغې نه مونږ ته هم څه لږډیر راکړئ. څلوینښتوکالوپورې به لګه د سپوڅفې وهي. څلوینښت کاله پس به دوی ته جواب ملاویږي چه تاسو به هم داسې رټلې شوي اوږي تږي او په دغه شان سختو عذابونو کښې پراته نې. اوس به دوی د ټولوښیګړونه ناامیده شي.(۴)

| | |
|---|---|
| رَّجَعَكَ اللّٰهُ | فَاِنْ |
| نو که چری اوایس راولی تاالله | |
| ا که الله ﷻ چرته ته (د جهاد نه) د دوی یوې | |

| لَّنْ تَخْرُجُوْا | فَقُلْ | لِلْخُرُوْجِ | فَاسْتَاْذَنُوْكَ | مِّنْهُمْ | اِلٰی طَآئِفَةٍ |
|---|---|---|---|---|---|
| هرګز به نهٔ اوځئ تاسو | ا نواووایه تهٔ | دپاره دوتلو | اواجازت اوغواړي ستانه | ددوئ نه | یوې ډلې ته |
| ته ورته اووایه چه هیڅ کله | | دپاره اجازت غواړي | نودوی به ستانه د جهاد د تلو | | ډلې ته راواپس کړي |

---

(۱) ۲۲/الحج:۱۹، ۲۲.
(۲) ٤/النساء:٥٦.
(۳) مسندابي يعلى:۱٦۱/٧، ابن ماجه كتاب الزهد باب صفة النار:٤۳۲٤.
(۴) ابن ابي الدنيا.

| مَعِيَ | اَبَدًا | وَّلَنْ | تُقَاتِلُوْا | مَعِيَ | عَدُوًّاؕ | اِنَّكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| زماسره | همیشه | اوهرګزبه اونه کړئ | جنګ تاسو | ازماپه ملګرتیاکښې | د دشمن سره | بیشکه چې تاسو |
| به تاسو ما سره اونه اوځئ او هیڅ کله به تاسو زما په ملګرتیا کښې د دشمن سره جهاد اونکړئ ځکه چه | | | | | | |

| رَضِيْتُمْ | بِالْقُعُوْدِ | اَوَّلَ مَرَّةٍ | فَاقْعُدُوْا | مَعَ الْخٰلِفِيْنَ۝ |
|---|---|---|---|---|
| راضي شوي يئ | په کيناستلو | په اول خل | نو کينئ | د روستوپاتي شوو سره |
| تاسو په اول خل (د جهاد نه) په ایسارډو باندې راضي شوي وئ نو (اوس هم) د ناستو سره کینئ | | | | |

قوله تعالى: فَاقْعُدُوْا مَعَ الْخٰلِفِيْنَ۝

**دمال اوکی جهاد ته مه بوځه:**- فرمائي چه کله الله ﷻ تا په سلامتئی سره د دې غزوې نه مدینې ته را اورسوی او په هغوی کښې یوه ډله تانه د یو بلې غزوې کښې ستا سره د تلودرخواست اوکړي نو هغوی ته د سزا ورکولو په توګه ته هغوی ته صفاانکار اوکړه چه نه تاسو ماسره تلې شئی اونه تاسو زما سره د دښمنانوسره جنګ کولې شئ. تاسو چه په هغه موقعه باندې دهوکه اوکړه او اول خل کیناستئی نواوس د تیاری څه معنی؟ نودا آیت په شان د آیت ﴿وَنُقَلِّبُ اَفْـِٕدَتَهُمْ وَاَبْصَارَهُمْ كَمَا لَمْ يُؤْمِنُوْا بِهٖۤ اَوَّلَ مَرَّةٍ﴾ دې. د بدنی خرابه بدله د بدئی نه پس ملاویږی لکه چه د نیکئی بدله د نیکئی نه پس ملاویږی. د حدیبیه دعمرې نه پس قرآن پاك فرمائیلی وو ﴿سَيَقُوْلُ الْمُخَلَّفُوْنَ اِذَا انْطَلَقْتُمْ اِلٰى مَغَانِمَ﴾ یعنی تاسو نه داشانه پاتې کیدونکی خلق چه کله تاسوغنیمتونه واخلئ نووائی چه مونږهم تاسوسره کیږو. تردې پورې اوفرمائیلې شو چه دوی ته اووایه چه په ناستوخلقوکښې تاسو هم کینئی چه د ښځو په شان په کورونوکښې ورننوتلي وی.

| وَلَا تُصَلِّ | عَلٰۤى اَحَدٍ | مِّنْهُمْ | مَّاتَ | اَبَدًا | وَّلَا تَقُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| اومه کوه مونځ دجنازې | په هیڅ یوکس باندې | د دوئ نه | اچې مړشي | همیشه | اومه ودریږه |
| او ته به په دوی کښې که څوک مړ شي هیڅ کله د جنازې مونځ مکوه | | | | | |

| عَلٰى قَبْرِهٖؕ | اِنَّهُمْ | كَفَرُوْا بِاللّٰهِ | وَرَسُوْلِهٖ | وَمَاتُوْا | وَهُمْ فٰسِقُوْنَ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| په قبر دهغه | بیشکه دوئ | کفرکړې دې په الله | او په رسول دهغه | اومړه شودوئ | اوحال دا چې دوئ فاسقان وو |
| اومه (د دعا غوښتلو دپاره) دهغه د قبر سره اودریږه ځکه چه دوی په الله او دهغه په رسول باندې کفر کړې دې | | | | | |

قوله تعالى: وَلَا تُصَلِّ عَلٰۤى اَحَدٍ مِّنْهُمْ

**دمنافق دجنازې کولو ممانعت:**- حکم کیږی چه اې نبی ﷺ ته د منافقانونه بالکل بې تعلقه شه که به دوی کښې هرڅوك مړشي نوته په هغوی باندې مه جنازه کوه اومه دهغوی قبرته څه چه دهغوی دپاره استغفاراوغوارې. ځکه چه دوی په کفر او فسق باندې پاتې وو او هم په هغې باندې مړه شو. داحکم خو عام دې خود دې شان نزول د عبدالله بن ابی بن سلول باره کښې دې چه د منافقانو رئيس او امام وو. په صحیح بخاری شریف کښې دی چه د هغه په مرګ د هغه ځوئ حضرت عبدالله ؓ د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضرشو اودرخواست ئې اوکړو چه زما د پلار د کفن د پاره تاسو پخپله اغوستې شوې قمیص راکړئی. حضور ﷺ ورکړو بیا ئې عرض اوکړو چه تاسو پخپله د جنازې مونځ ادا کړئی. حضور ﷺ دا درخواست هم منظور کړو اود مانځه د کولو د پاره اودریدو خوحضرت عمر ؓ د حضور ﷺ لمن اونیوله اوعرض ئې اوکړو حضور ﷺ! تاسو به د ده د جنازې مونځ کوئې؟ اوالله ﷻ ددې نه منع فرمائیلې

دی. حضور ﷺ اوفرمائیل چه واوره الله ﷻ ماته اختیار راکړې دې چه که ته د دوی د پاره استغفار اوکړې اوکه اونه کړې اوکه ته د اویاکرتې استغفار هم اوکړې نو الله ﷻ به هغه اونه بښی نو زه به د اویاؤ خلونه هم زیات استغفاراوکړم. حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل یارسول الله ﷺ دا منافق وو. خو بیاهم حضور ﷺ دجنازې مونځ اوکړو په دې باندې دا آیت نازل شو[1] او په روایت کښې دی چه کښې صحابه کرام رضی الله عنهم هم د رسول الله ﷺ په اقتداء کښې مونځ اوکړی.[2]

په بل روایت کښې دی چه حضرت عمر رضی الله عنه فرمائی چه کله حضور ﷺ د مانځه د پاره وړاندې شو نوزه د صف نه اووتلم او دحضور ﷺ په وړاندې شوم او اومې وئیل ښه ده تاسو به د الله ﷻ د دې دښمن عبدالله بن ابی د جنازې مونځ کوئې سره د دې چه په فلانکې ورځ هغه داسې وئیلي وو او په فلانکې ورځ ئې داسې وئیلي وو. د هغه هغه ټولې خبرې سردوباره کړې. حضور ﷺ مسکې وو او دا ټولې خبرې واوریدې نو وئې فرمائیل عمرا ما پریږده الله ﷻ ماته د استغفار اختیار راکړې دې که چرې ماته معلومه شی چه اویا کرتې استغفارد ده ګناه معاف کولې شی نو زه به یقینًا د دې نه ډیر استغفار اوکړم. حضور ﷺ د جنازې مونځ هم اوکړو جنازې پسې هم لاړو او دخښولو په وخت کښې هم موجود وو. د دې نه پس ماته په خپله د دې ګستاخئ ډیر افسوس اوشو چه الله ﷻ او رسول الله ﷺ ډیر ښه پوهیږی ما دا داسې او دومره قدرې جرات ولې اوکړو. لږ شان ساعت به شوی وو چه دا دواړه آیاتونه نازل شو. دې نه پس تر آخر وخته پورې نه خو حضور ﷺ چرته د منافق جنازه اوکړه اونه د هغه په قبر راغلو دعائی اوکړه[3] او په روایت کښې دی چه د هغه خوئ عبدالله رضی الله عنه حضور ﷺ ته دا هم وئیلي وو چه که تاسو تشریف رانه وړو نو دا خیره به د همیشه د پاره زمونږ په زړه وی. کله چه حضور ﷺ تشریف راوړو نو هغه ئې قبرته کوز کړې وو. حضور ﷺ اوفرمائیل چه دې نه وړاندې مو زه ولې رانه وستلم. هغه ئې د قبر نه رااوویستو حضور ﷺ د هغه په ټول بدن باندې تکانړې واچولې او دم ئې کړو اوهغه ته ئې خپل قمیص واغوستلو.[4] او په یو روایت کښې دی چه هغه پخپله وصیت کړې وو او مرشوې ووچه دهغه د جنازې مونځ دې پخپله رسول الله ﷺ اوکړی دهغه خوئ راغلو اودهغه آخری خواهش او وصیت نه ئې هم خبرکړې وو او داتې هم وئیلي وو چه د هغه وصیت داهم دې چه هغه دې دحضور ﷺ په قمیص کښې کفن کړې شی. حضور ﷺ د هغه د جنازې دمونځ نه فارغ شو چه په دې کښې حضرت جبرائیل علیه السلام راغلو دا آیاتونه راکوزکړل او راتې وړل[5] اوپه یو روایت کښې دی چه حضرت جبرائیل علیه السلام دجنازې په وخت کښې د حضور ﷺ لمن اونیوله او دا آیت ئې ورته واورولو[6] خودا روایت ضعیف دې. اوپه یو روایت کښې دی چه هغه دخپلې بیمارئې په حالت کښې حضور ﷺ راغوښتې وو. چه کله حضور ﷺ تشریف یوړو نو ورته ئې اوفرمائیل چه ته د یهودیانومحبت تباه کړې. هغه اووئیل یارسول الله ﷺ داوخت دغصې او رټلو نه دې بلکه زما دا خواهش دې چه تاسو ماله د استغفاردعا اوکړئې چه زه مړشم ما په خپل قمیص کښې کفن کړه.

**منافق ته درسول کریم ﷺ خپل قمیص ورکولو اصل وجه:** دبعضې سلفو نه روایت دې چه د قمیص ورکولومطلب دا وو چه کله حضرت عباس رضی الله عنه راغلو نو دهغه په بدن باندې دچاکپړا صحیح نه وه او آخر

---

[1] صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة براءة باب(استغفرلهم اولاتستغفرلهم): ۴۶۷۰،صحیح مسلم: ۲۷۷۴، طبرانی: ۱۷۰۵۱، دلائل النبوة: ۶۷۷۴/۵.

[2] صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة براءة باب (ولاتصل علی احدمنهم مات ابدا ولاتقم علی قبره): ۴۶۷۲،صحیح مسلم: ۶۷۷۴.

[3] صحیح بخاری کتاب الجنائز باب مایکره من الصلاة علی المنافقین والاستغفار للمشرکین: ۱۳۶۶، دلائل النبوة: ۶۸۷/۵.

[4] احمد: ۳۷۱/۳، صحیح بخار: ۱۲۷۰، مسلم: ۲۷۷۳.

[5] ابن ماجه کتاب الجنائز باب فی الصلاة فی اهل القبلة: ۱۵۲۴وسنده ضعیف والحدیث صحیح بالشواهد.

[6] مسندابی یعلی: ۴۱۱۲، ابن جریر: ۱۷۰۶۸.

نی د ده قمیص ورواغوستلو نو هغه پوره شو دې هم ښه اوږد او د پلن وجود سړې وو نو ده هغې په بدله کښې حضور ﷺ خپل قمیص ورکړو. (۱)

**دممانعت نه پس نبی کریم ﷺ دیو منافق جنازه نه ده کړې:**:ددې آیت نه پس حضور ﷺ نه چرته د یو منافق جنازه کړې اونه ئې د چا دپاره استغفارکړې. په مسند احمدکښې دی چه کله به حضور ﷺ د چا جنازې ته راوبللې شو نوحضور ﷺ به تپوس اوکړو چه خلقو ته به د هغه ښیګړې معلومې وی نو حضور ﷺ به تلو اود هغه د جنازې مونځ به ئې کولو اوکه چرته اخوا دیخوا خبره به ئې غوږ ته راغله نو صفا انکار به ئې کولو(۲) دحضرت عمر رضی الله عنه طریقه د حضور ﷺ نه پس دا وه چه د چا د جنازې مونځ به حضرت حذیفه رضی الله عنه کولو نوحضرت عمر رضی الله عنه به هم کولو. اود چا به چه حضرت حذیفه رضی الله عنه نه کولو نو هغوی به هم نه کولوځکه چه حضرت حذیفه رضی الله عنه ته حضور ﷺ دمنافقانو نومونه خودلی وو.صرف هم دوی ته دا نومونه معلوم وو او په دې وجه هغوی ته درسول الله ﷺ رازدار وائیلې شو.بلکه یو خل خوداسې هم شوی چه حضرت عمر رضی الله عنه یو جنازې کولو ته اودریدو نوحضرت حذیفه رضی الله عنه پرې سکونداره اولګوله او منع کړو. د جنازې دمونځ او استغفار دې دواړو ځیزونو نه د منافقانو باره کښې مسلمانان منع کولو دا دلیل دې چه ددې د مسلمانانو باره کښې ددې دواړو ځیزونو پوره تاکید دې. په دې کښې د مړو د پاره هم پوره نفع ده اود ژندو د پاره هم کامل اجر او ثواب دې.

**دمسلمان په جنازه کښې د شرکت ثواب:**:په حدیث شریف کښې دی چه حضور ﷺ فرمائی څوك چه جنازې سره لاړشی اود جنازې مونځ اوکړی هغه ته یو قیراط ثواب ملاویږی او چه څوك د ښخولو پورې حصارشی هغه ته دوه قیراط ثواب ملاویږی. تپوس اوشو چه قیراط څه ځیز دې؟ اوفرمائیلې شو د تولونه وړوکې قیراط د أحد د غر هومره دې(۳) دغه شان دا هم د حضور ﷺ عادت مبارك ووچه د مړی د ښخیدو نه به فارغ شو نوقبر سره به اودریدو اوحکم به ئې اوفرمائیلو چه دخپل ملګری د پاره استغفار اوکړئی اود ده د پاره د ثابت قدمئی دعااوکړئی. د ده نه دې وخت کښې سوال او جواب کولې شی.(۴)

| وَلَا تُعْجِبْكَ | أَمْوَالُهُمْ | وَأَوْلَادُهُمْ | إِنَّمَا | يُرِيدُ اللَّهُ | أَنْ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوپه تعجب کښی دې وانه چوی تالره | مالونه ددوئ | اواولاد ددوئ | ابیشکه | اراده لری الله | اچی ا |

او د دوی مالونو اواولاد ته مه حیرانیږه (چه څومره ډیردی) الله غواړی چه ددې په سبب دوی ته په دنیا

| يُعَذِّبَهُمْ | بِهَا | فِي الدُّنْيَا | وَتَزْهَقَ | أَنْفُسُهُمْ | وَهُمْ | كَافِرُونَ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| عذاب ورکړی دوئ ته | په دې سره | په دنیاکښی | اواوځی | اروحونه ددوئ | احال داچی دوئ | کافران وی |

کښې عذاب ورکړی او دوی ته د کفر په حالت کښې مرګ راځی

د دې مضمون ایت مبارك تیرشوې دې اوهلته د هغې پوره تفسیر هم د الله ﷻ په فضل سره لیکلې دې

(۱) صحیح بخاری کتاب الجهاد باب الصلاة للاساری:۳۰۰۸.

(۲) احمد:۵/۲۹۹-۳۰۰وسنده صحیح، ابن حبان:۳۰۵۷، حاکم:۱/۳۶۴، مجمع الزوائد:۳/۴.

(۳)صحیح بخاری کتاب الجنائزباب من انتظر حتی تدفن:۱۳۲۵،صحیح مسلم:۹۴۵، ابوداوُد:۳۱۶۸،ترمذی:۱۰۴۰،ابن ماجه: ۱۵۳۹، احمد:۲/۴۱۰.

(۴)ابوداوُد کتاب الجنائز باب الاستغفار عندالقبرللمیت فی وقت الانصراف :۳۲۲۱،وسنده حسن، حاکم:۱/۳۷۰، بیهقی :۴/۵۶.

د کوم چه دوباره کولو څه ضرورت نشته.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَإِذَآ | أُنزِلَتْ | سُورَةٌ أَنْ ءَامِنُوا | بِٱللَّهِ | وَجَٰهِدُوا | |
| او کله چې ا نازل کړې شي ا | | يو سورت چې ايمان راوړئ ا | په الله باندې ا | او جهاد او کړئ ا | |
| او کله چه يو سورت نازل شي او په هغه کښې وی، چه په الله باندې ايمان راوړئ ا او د رسول په | | | | | |
| مَعَ رَسُولِهِ | ٱسْتَـْٔذَنَكَ أُولُوا ٱلطَّوْلِ | مِنْهُمْ | وَقَالُوا | | |
| په ملګرتيا د رسول | دهغه کښې انوغواړې اجازت سنانه خاوندان دقدرت ا | د دوئ نه ا | او وائي ا | | |
| ملګرتيا کښې جهاد او کړئ ا نو په هغوی کښې چه کوم طاقت لري هغوی ستا نه اجازت غواړي ا او وائي | | | | | |
| ذَرْنَا | نَكُن | مَّعَ ٱلْقَٰعِدِينَ ۝ | رَضُوا | بِأَن يَكُونُوا | |
| چې پريږده مونږ ا | چې شو مونږ ا | د کور ناستو سره | راضي شول دوئ | ا چې شامل شي دوئ ا | |
| مونږ پريږده چه د ناستو خلقو سره پاتې شو دوی په دې باندې راضي دی چه د روستو پاتې شوو خلقو سره | | | | | |
| مَعَ ٱلْخَوَالِفِ | وَطُبِعَ | عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ | فَهُمْ | لَا يَفْقَهُونَ ۝ | |
| د روستو پاتې شوو ښځو سره ا | او مهر و هلې شوې دي | ا په زړونو | د دوئ نو دوئ ا | نه پوهيږي ا | |
| ايسار شي ا اود دوی په زړونو باندې مهر لګولې شوې دې نو دوی (په خبره) نه پوهيږي ا | | | | | |

**قوله تعالى:: اسْتَأْذَنَكَ أُولُوا الطَّوْلِ مِنْهُمْ .**

**بزدل منافقان جهاد نه شي کولې:-** ددې خلقو خرابې بيانيږي چه سره د طاقت او قوت به د جهاد د پاره نه وتل او خان به ئې پټولو اود الله ﷻ د حکم اوريدونه پس به بيا رسول الله ﷺ نه راتلل اود خپل پاتې کيدو اجازت به ئې غوښتلو. د هغوی ملګرتيانه کولوته اوګوره چه د ښځو په شان شوی دی لښکرې لاړې او دوی نامرده د زنانو او ښځو په شان شاته پاتې شو.

**منافق خبرې ډيرې کوی کارهيڅ نه کوی::** د جنګ په وخت کښې بزدل ويريدونکی او په کورونوکښې ننوتلې اوسيدونکی اود امن په وخت کښې غټې غټې خبرې کونکی، د غږې دونکی سپو په شان اوګرځيدونکی اوريخو په شان هسې خان ښانی. بل ځای کښې پخپله قرآن کريم فرمانی چه د ويرې په وخت کښې داسې سترګې واړوی لکه چه څوك مرې اوچه کله هغه موقعه تيره شوه نوبيا غوړې خبرې اواوړدې اوږدې دعوې کونکی خبرې جوړوی(۱) دامن په وخت کښې خوپه مسلمانانوکښې فساد خوروی اود اوچتو اوچتو بهادرو ډهندورې وهی. دا څه ښه خبره نه ده چه د جنګ په وخت کښې لکه د ښځو په شان بنګړې اچوی او په کورونوکښې پرده کښې کينې. سورې او غارونه لټوی او خپل خان چرته پټوی. ايماندار خو د سورة نازليدو اود الله ﷻ د حکم انتظارکوی خو چه کوم بيماران زړونووالا دی هغوی د جهاد دپاره د الله ﷻ حکم اوسورة نازليدوسره سترګې پټوی. په هغوی باندې افسوس دې اود دوی د پاره د تباهئی مصيبت دې. که چرې دوی تابعدار وو اود دوی د خلې نه ښه خبره وتله اود دوی ارادې ښې وې اودوی د الله ﷻ د خبرو تصديق کړې وونو هم دا څيز د دوی په حق کښې بهتر وو.(۲) خود دوی په زړونوخود هغوی د بدعملو په وجه مهر لګيدلې دې اوس خو په دوی کښې د دې خبرې

(۱) ۳۳/الاحزاب: ۱۰.
(۲) ۴۷/محمد: ۲۰-۲۱.

صلاحيت هم نشته پاتې شو لا خپل نفع نقصان پيژندل.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَعَهٗ | اٰمَنُوْا | وَالَّذِيْنَ | الرَّسُوْلُ | لٰكِنِ | |
| ا دهغه سرا | چې ايمان ئې راوړې دې | ا اوهغه كسان | ا رسول | ا ليكن | ا |

ا خورسول او كومو كسانو چه د ده سره ايمان راوړې دې هغوى په خپلو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَهُمُ | وَاُولٰٓئِكَ | وَاَنْفُسِهِمْ ط | بِاَمْوَالِهِمْ | جٰهَدُوْا |
| اهم دوئ لره دي | اوداكسان چې دى | اپه نفسونو خپلو سره | اپه مالونو خپلو سره | جهاد كوى هغوئ |

مالونو او جانونو سره (دالله په لاركښې) جهاد كوى ا او د دوى دپاره (په دنيا او آخرت كښې) د نيكو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَهُمْ | اَعَدَّ اللّٰهُ | الْمُفْلِحُوْنَ۝ | هُمُ | وَاُولٰٓئِكَ | الْخَيْرٰتُ |
| ا دپاره ددوئ | تيار كړې دى الله | اخلاصې موندونكى | اهم دوئ دى | اوداكسان | تولې نيكيانې دى |

بدلې دى ا او هم دوى كامياب (او كامران) دى ا الله د دوى دپاره باغونه تيار كړى دى چه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ۝ | فِيْهَا ط | خٰلِدِيْنَ | الْاَنْهٰرُ | مِنْ تَحْتِهَا | تَجْرِىْ | جَنّٰتٍ |
| دا ا كاميابى ده لويه | ا په هغې كښې ا | همېشه په اوسېږى | نهرونه ا | لاندې دهغې نه ا | چې بهيږى ا | باغونه ا |

د هغې د بنګلو د لاندې به ولې بهيږى او دوى به په هغې كښې همېشه وى ا (يقيناچه) دا لويه كاميابى ده

قوله تعالىٰ: جٰهَدُوْا بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ ط

**رښتونى مسلمانان په خپل ځان اومال جهادكوى:-** دمنافقانو مذمت اود هغوى اخروى تباهى بيانولو سرد اوس دمؤمنانو تعريف اود هغوى اخروى راحت بيان كولې شى. دوى دجهاد د پاره ملاتړلې وى او دوى خپل ځان اومال د الله ﷻ په لاركښې قربانى كوى. هم د دوى په حصه كښې ښيكړې او نيكنى دى هم دغه خلاصې موندونكى خلق دى. هم د دوى د پاره جنت الفردوس دې. او هم د دوى د پاره اوچتې درجې دى. هم دغه مقصد حاصلونكى دى اوهم دغه كاميابئ ته رسيدونكى خلق دى.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَهُمْ | لِيُؤْذَنَ | مِنَ الْاَعْرَابِ | الْمُعَذِّرُوْنَ | وَجَآءَ |
| ا هغوئ ته ا | دپاره ددې چې اجازت وركړې شى | ا دبانډې دخلقو نه | ا عذركونكى | اوراغلل |

اود ميرو والو خلقو نه عذر كونكى خلق راغلل (اوعذرونه د دې دپاره پيش كوى) چه دوى ته (د پاتې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| سَيُصِيْبُ | وَرَسُوْلَهٗ ط | اللّٰهَ | كَذَبُوا | الَّذِيْنَ | وَقَعَدَ |
| ا زر به اورسيږى | اوهغه رسول ته | ا الله | چې دروغو نې ونيلى وو | اهغه كسان | او كيناستل |

كيدو اجازت اوشى) اوهغه كسان ناست پاتې شوى دى چه الله او د هغه رسول ته ئې دروغ ونيلى وو زرده چه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَذَابٌ اَلِيْمٌ۝ | مِنْهُمْ | كَفَرُوْا | الَّذِيْنَ | |
| ا عذاب ا دردناك ا | ددوئ نه ا | چې دكفرپه لار تلى دى ا | هغه كسانوته ا | |

كومو كسانو په دوى كښې كفر كړې دې ا هغوى ته به دردناك عذاب اورسيږى ا

قوله تعالىٰ: وَجَآءَ الْمُعَذِّرُوْنَ

**د دروغو عذرونه كونكو ته تنبيه:-** دا بيان د هغه خلقو دې چه په حقيقت كښې د څه شرعى عذر په وجه

په جهاد کښې شاميليدې نه شو.د مدينې نه چاپيره به داخلق راتلل اود خپلې کمزورئې ضعيفئې او بې طاقتئې بيان کولوسره به ئې د الله ﷻ د رسول ﷺ نه به ئې اجازت غوښتلو نوکه حضور ﷺ به دوی واقعي معذوره اوګڼل نو اجازت به ئې ورکولو.دا د بنوغفارد قبيلې خلق وو.د ابن عباس ﷺ په قراءت کښې ﴿ وَجَآءَ الْمُعْذِرُوْنَ ﴾ دی يعنی اهل عذرخلق. هم دغه مطلب او معنی زيانه ښکاره ده ځکه چه هم د دې جملې نه پس د دې خلقو بيان دې چه دروغژن وو اودوی نه وو راغلې اود خپل خان د منع کيدو وجه ئې بيان نه کړه اونه ئې د حضورﷺ نه د خپل خان پاتې کيدو اجازت واخستو. بعضې بزرګانو وئيلي دی چه په اصل کښې عذر کونکی هم په اصل کښې معذوره نه وو په دې وجه دهغوی عذر قبول نه کړې شو.خو اولنی قول اولنې دې هم دغه ډير ظاهر دې والله اعلم. ددې خو يوه وجه هم دغه ده کومه چه مونږ پورته بيان کړې ده اودويمه وجه دا ده چه د عذاب وعده هم هغه کسانو سره شوې څوک چه ناست پاتې وو.

لَيْسَ عَلَى الضُّعَفَآءِ
| نشته | په کمزورو باندې|
| اوپه کمزور خلقو

وَلَا عَلَى الْمَرْضٰى وَلَا عَلَى الَّذِيْنَ لَا يَجِدُوْنَ مَا يُنْفِقُوْنَ حَرَجٌ
اونۀ | په بيمارانو باندې | اونۀ په هغه کسانو باند | چې نۀ مومي | هغه څه | چې ونې لګوی|هيڅ ګناه
اوپه ناجوړو اوپه هغه کسانو چه دومره ورسره څه نه وی چه (په جهاد کښې ئې) خرچ کړی څه ګناه نشته

اِذَا نَصَحُوْا لِلّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ؕ مَا عَلَى الْمُحْسِنِيْنَ مِنْ سَبِيْلٍ ؕ
هله چې | اخلاص لری هغوی | دالله سره | اودرسول دهغه سره | نشته په نيکانوخلقو باند | څه لاره دالزام
خوچه په اخلاص سره دالله اود هغه د رسول ملګری وی | اوپه نيکانو باندې (هم) څه ملامتيا نشته

وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۙ وَّلَا عَلَى الَّذِيْنَ اِذَا مَآ اَتَوْكَ
اوالله | ابښونکې | ارحم کونکې دې | او نشته اعتراض | په هغه کسانو باندې | کله چې| راغلي وو تاته
اوالله ښونکې اومهربان دې | اونه په هغه خلقو (ملامتيا شته) چه تا ته راشی (اوراتلل ئې په دې غرض وی)

لِتَحْمِلَهُمْ قُلْتَ لَآ اَجِدُ مَآ اَحْمِلُكُمْ
دپاره ددې چې ته سواره کړې هغوی | نو اواوئيل تا | چې نۀ مومم زه | هغه څيز | چې سواره کړم تاسو
چه ته دوی (په سورلئ) سوارۀ کړې | (خو) تا ورته اووئيل ما سره دومره څاروی نشته چه زه پرې تاسو

عَلَيْهِ ص تَوَلَّوْا وَّاَعْيُنُهُمْ تَفِيْضُ مِنَ الدَّمْعِ حَزَنًا اَلَّا
په هغې باند | نو واپس شو هغوی | اوسترګې دهغوی | بهيدلې | داوښکونه | په وجه دغم | چې نۀ
سوارۀ کړم | نودوی په داسې حال کښې واپس شی چه د هغوی د خفګان په وجه اوښکې بهيږی | چه

يَجِدُوْا مَا يُنْفِقُوْنَ ؕ اِنَّمَا السَّبِيْلُ عَلَى الَّذِيْنَ
مومی هغوی | هغه څه | چې خرچ ئې کړی په جهاد کښې | ابيشکه | لار داعتراض | په هغه کسانو ده
دوی سره دومره څه نشته چه (په جهاد کښې ئې) خرچ کړی | ملامتيا په هغه کسانو باندې ده چه

| يَسْتَأْذِنُوْنَكَ | وَهُمْ | أَغْنِيَآءُ | رَضُوْا | بِأَنْ يَّكُوْنُوْا | مَعَ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې اجازت غواړي ستا نه | اودې هغوئ | مالداران | راضي شوهغوئ | چې وي هغوئ | سره |

هغوي مالدارن وی اوستانه (دایساریدو) اجازت غواړی ا دوی غواړی چه د ایسارو شوو کسانو سره

| الْخَوَالِفِ | وَطَبَعَ | اللّٰهُ | عَلٰى قُلُوْبِهِمْ | فَهُمْ | لَا يَعْلَمُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| دپاتې شوو ښځو | اومهراووهلو | الله | په زړونو دهغوئ | نو دوئ | نه پوهیږی |

شی او الله ﷻ د دوی په زړونو باندې مهر لګولی دې انو دوی نه پوهیږی (چه په ایساریدو کښې زمونږ تاوان دې

**قوله تعالی:: لَيْسَ عَلَى الضُّعَفَاءِ**

**رښتونی مجاهد اودعدم جهادشرعی عذر:-** په دې آیت کښې د هغه شرعی عذرونوبیان کیږی چه د هغې په موجودګنی کښې یوسړې جهاد له لارنه شي نو په هغه باندې څه شرعی حرج نشته. په دې وجوکښې یو قسم هغه دې چه لازم وی په یوحالت کښې هم د انسان نه نه اخواکیږی لکه پیدائشی کمزوری یا ړوندوالې ګوډوالي،شل ګوډ،فالج وهلې یابالکل بې طاقته.بل قسم هغه عذرونه دی چه کله وی اوکله نه وی. هغه اتفاقی اسباب دی مثلاً څوك بیمار شو یابالکل فقیرشود سفراو د جهاد سامان نه شي پوره کولې وغیره نوکه دا خلق په جهادکښې شرکت اونه کړی شي نو په دوی باندې شرعاً څه نیول ګناه یاشرم نشته. خودوی ته په خپل زړه کښې صلاحیت اوخلوص ساتل پکار دی. د مسلمانانو د دین الهی خیرخواه به اوسیږی، نور به د جهاد د پاره تیاروی او په ناسته ناسته چه د مجاهدین کوم خدمت کولې شی هغه به پوره کوی. په داسې نیکانویاندې د الزام هیڅ وجه نشته. الله ﷻ ښښونکې او مهربان دې.

**د عیسیٰ علیه السلام نه دهغه د حواریانو تپوس او دهغه جواب::** حواریانو د عیسی ﷺ چه د الله ﷻ نبی وو تپوس اوکړو چه مونږ ته اوښایه د الله ﷻ خیرخواه څوك دی؟ هغوی اوفرمائیل چه څوك د الله ﷻ حق دخلقو په حقونومقدم کړی اوچه کله یو کارددین اویود دنیا راشی نو ددینی کاردکولو چه پوره لحاظ اوساتی اوبیا فارغ شی نو د دنیاکار اوکړی.

**د صحابه کرامو اخلاص اود الله ﷻ د طرفه نزول رحمت::** یوځل د قحط په کال خلق د استسقاء د مانځه دپاره میدان ته اووتل په هغوی کښې حضرت بلال بن سعد ﷺ هم وو. هغه اودریدو اود الله ﷻ حمد اوثناء نی اوویله بیا نی اوفرمائیل چه اې خلقو تاسو دا منئی چه تاسو ټول دالله تعالیٰ ګناه ګار بندیګان ئې. ټولو پوره اقرار اوکړو نو اوس هغه دعا شروع کړه چه اې پروردګار امونږ ستا په کلام کښې اوریدلی دی چه په نیکانو باندې هیڅ لارنشته مونږ د خپلو خطاګانواقراری یو ته مونږ معاف کړه په مونږ باندې خپل رحم اوکړه او په مونږ باندې د خپل رحمت بارانونه راووروه. هغوی لاسونه اوچت کړل اوهغوی سره ټولوهم لاسونه اوچت کړل.د الله ﷻ رحمت په جوش کښې راغلواوهم هغه وخت د رحمت د اوریخونه په چپو چپو باران راووریدو. (۱)

**د نابینا صحابه جذبه جهاد::** د حضرت زید بن ثابت ﷺ بیان دې چه زه د حضوراکرم ﷺ سره کاتب (منشی) ووم چه کله سورة براءة نازلیدلو ما هغه لیکلو زما په غوږ کښې قلم پروت وو د جهاد آیاتونه نازلیدل حضور ﷺ په انتظار وو چه اوس به کوم حکم نازلیږی. دې کښې یو نابینا صحابی راغلو وئې

(۱) ابن ابی حاتم: ۱۸۶/۶.



ونیل حضور ﷺ! زه به د جهاد احکام په دې روندوالی کښې څنګه په ځای راوړی شم. هم په هغه وخت دا آیت نازل شو. دلته د هغوی بیان کیږی څوك چه په جهاد کښې شرکت کولو د پاره ترقیبې خود قدرتی اسبابونه مجبور وی او په ناخوښئی سره پاتې کیږی.

**دغریبو صحابه کرامو اخلاص اوجهاد جذبه اوهغوئ ته تسلي::** دجهاد حکم اوشو د رسول الله ﷺ اعلان اوشو دمجاهدینو لښکر راجمع کیدل شروع شو نو یوه ډله راغله چه په هغې کښې حضرت عبدالله بن مغفل بن مقرن مزنی رضي الله عنه وغیره وو. هغوی اوونیل چه یارسول الله ﷺ! مونږ سره سورلئی نشته تاسو زمونږ د پاره د سورلئ انتظام اوکړئی چه مونږ هم د جهاد کولواو رسول الله ﷺ سره د یوځای کیدلوشرف حاصل کړو. حضور ﷺ جواب ورکړو چه والله ما سره خو یوه سورلی هم نشته. دوی ناامیده خفه ژړغونی مخ سر رهونکی واپس شو او په دغه وخت کښې په هغوی د دې نه زیات دروندبوج هیڅ هم نه وو چه دوی په دغه وخت کښې د رسول الله ﷺ د ملګرتیا اود جهاد د نیك بختئی نه محروم شو اود ښځو په شان په هغوی دا موده کورکښې تیرول پریوتل. نه هغوی سره پخپله څه وو اونه د چرته نه څه ملاویدل. نو الله ﷻ دا آیت نازل کړو اود هغوی تسلي اوکړه.[1]

**دمعذورو فضیلت::** دا آیت دقبیله مزینه یوښاخ بنی مقرن باره کښې نازل شوې دې. د محمد بن کعب رحمه الله بیان دې چه دااووه سړی وودبنی عمروسالم بن عوف،دبنی واقف حرمی بن عمرو،دبنی مازن عبدالرحمن بن کعب، د بنو معلی فضل الله، د بنی سلمی عمروبن عتبه، عبدالله بن عمرومزنی، د بنو حارثه علیه بن زید. په بعضې روایتونو کښې په نومونو کښې ګړبړهم دي. هم د دې نیك نیت بزرګانو باره کښې د الله ﷻ رسول د رسولانو سرتاج (صلی الله علیه وعلی آله واصحابه وازواجه واهل بیته وسلم) فرمان دې چه اې زما مجاهدو ملګرو! تاسو چه په مدینه منوره کښې کوم ملګری شاته پریخی دی په هغوی کښې هغه هم دی چه تاسوکوم خرچ کوئې او میدان ته ورځئی او کوم جهاد کوئې ټول هغوی هم په دې کښې شریك دی. بیا حضور ﷺ هم د دې آیت تلاوت شروع کړو.[2] اوپه روایت کښې دی چه دې اوریدو سره صحابه کرامو رضي الله عنهم اوونیل هلته سره د دې چه په کورونو کښې اوسیدلوسره هغوی زمونږ سره په ثواب کښې شریك دی. حضور ﷺ اوفرمائیل چه او په دې وجه چه هغوی معذوردی اود عذر په وجه پاتې شوی دی. اوپه یو روایت کښې دی هغوی بیمارو رابندکړی دی.[3] بیا نې د هغه خلقو بیان اوفرمائیلو چاته چه په حقیقت کښې څه عذر نشته مالدار او ښه تکړه دی خو بیا هم سرکارنبوت ﷺ ته راتلو سره بهانې کوی اوپه جهادکښې ملګرتیا نه کوی. دښځو په شان په کورونوکښې ناست دی زمکه نې نیولې ده. ونې فرمائیل د هغوی د بدو عملونوپه وجه د هغوی په زړونومهر لګیدلې دې. اوس هغوی د خپل ښه بد د علم نه هم خالی شوی دی.

**(الحمدلله)** د تفسیر ابن کثیرد لسمې سپارې تفسیر مکمل شو.

[1] الطبری: ۴۲۰/۱۴.
[2] دا روایت مرسل دې.
[3] صحیح مسلم کتاب الامارة باب ثواب من حبسه عن الغزو مرض اوعذر آخر: ۱۹۱۱، ابن ماجه: ۲۷۶۵، احمد: ۳۰۰/۳، دلائل النبوة: ۲۶۷/۵.

يَعْتَذِرُوْنَ اِلَيْكُمْ اِذَا رَجَعْتُمْ اِلَيْهِمْ ط قُلْ لَّا تَعْتَذِرُوْا

عذرونه به پیش کوی| تاسوته| کله چي| واپس ورشئ تاسو| دوئ ته| اورته اووایه| چي عذرونه مه کوئ

دوئ به تاسو ته رنګ رنګ عذرونه پیش کوی| کله چي ورته تاسو واپس شئ| اورته اووایه چي عذرونه مکوئ

لَنْ نُّؤْمِنَ لَكُمْ قَدْ نَبَّاَنَا اللّٰهُ مِنْ اَخْبَارِكُمْ ط

هرگز باور نه کوؤ مونږ | په خبره ستاسو | په تحقیق خبر کړی یو مونږه | الله | د حالاتو ستاسو نه

مونږ هیڅکله ستاسو خبره نه منو | ..................مونږ ته الله پاک ستاسو د حالاتو خبر راکړی دی

وَسَيَرَى اللّٰهُ عَمَلَكُمْ وَرَسُوْلُهٗ ثُمَّ تُرَدُّوْنَ اِلٰى

اواوس به گوری الله| عمل ستاسو ته| او رسول دهغه (هم) | بیا | به واپس بوتلي شئ تاسو| هغه الله ته

اوبیا به هم الله اود هغه رسول ستاسو کارونه ویني | اوبیابه هغه ذات (الله) ته واپس کیږئ

عٰلِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝

چي عالم دي په پټه| اوپه ښکاره| نوخبربه درکړی تاسو ته| په هغه عملونو| چي وئ تاسو چي کول به مو

چي هغه ته پټ او ښکاره هرڅه معلوم دی| نوتاسو چي کوم عملونه کول د هغې خبر به درته درکړي

سَيَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ لَكُمْ اِذَا انْقَلَبْتُمْ اِلَيْهِمْ

قسمونه به خوری داخلق| په الله باندې| تاسوته | کله چي| واپس راشئ تاسو | دوئ ته|

چي تاسو واپس شئ نو دوئ به درته په الله قسمونه خوری | دې دپاره چي تاسو ترې

لِتُعْرِضُوْا عَنْهُمْ ط فَاَعْرِضُوْا عَنْهُمْ ط اِنَّهُمْ رِجْسٌ ز

دپاره ددې چي مخ واړوئ تاسو| دسزا ددوئ نه| نومخ واړوئ| دسزا ددوئ نه| بیشکه دوئ| پلیت دی

نه ډډه اوکړئ (په ایسارید ئې نه ملامته کوئ) نوتاسوترې ډډه اوکړئ |............دوئ پلیت دی

وَّمَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ج جَزَآءً بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ۝

اوځائي دورتلو ددوئ | دوزخ دی | په وجه دبدلې | په هغه کارونو| چي وو دوئ| چي کول به ئې

اوددوئ ځائي دوزخ دی | ...............اودا د دوئ د عملونو بدله ده

يَحْلِفُوْنَ لَكُمْ لِتَرْضَوْا عَنْهُمْ ج فَاِنْ تَرْضَوْا

قسمونه خوری دوئ | تاسوته | دپاره ددې چي راضي شئ تاسو | ددوئ نه | نو که تاسو | راضي شئ

دوئ تاسو ته ځکه قسمونه خوری | چي تاسوترینه رضا شئ | نوهرڅو که تاسو د دوی نه راضي هم شئ

عَنْهُمْ فَاِنَّ اللّٰهَ لَا يَرْضٰى عَنِ الْقَوْمِ الْفٰسِقِيْنَ ۝

ددوئ نه | نو بیشکه الله | نه راضي کیږی | دخلقو | فاسقانونه |

نو الله ﷻ دداسې شرارتی خلقونه نه رضا کیږی |

قوله تعالى: يَعْتَذِرُوْنَ اِلَيْكُمْ

**دمنافقانو بې ځایه عذرونه اوهغوئ ته سخته رټنه:** -الله ﷻ دمنافقانو متعلق دامعلومه كړې ده چه كله ته مدينې ته واپس شې نوستا په وړاندې به خپل عذرونه پيش كوي. خوته هغوى ته اووايه چه د باطل عذرونو پيش كولو هيڅ ضرورت نشته مونږ به ستاسو خبره هيڅ كله هم رښتيا نه منو او الله ﷻ ماته ستاسو احوال معلوم كړى دى.ډير زر به الله ﷻ ستاسو اعمال په دنياكښې د خلقو په وړاندې ښكاره كړي اوتاسوته به ستاسو دټولو ښو اوبدو اعمالو خبردركړى.او بيا به د خپلو عملونو نتيجه هم ګورئ.

**دمنافقانو بې ځایه قسمونه اومؤمنانو ته خبرداری:**:بيا ئې د هغوى متعلق نور خبر هم وركړو چه هغوى به قسمونه خوري اوبيان به كوي دې دپاره چه ته هغوى معاف كړې او دهغوى نه چشم پوشي اوكړې. دابه هغه وخت وى چه ته كله مدينې ته واپس شې.خو ته هيڅ كله هم دهغوى تصديق مه كوه او د هغوى نه دسپكاوى په غرض ډډه اوكړه. په هغوى كښې د نفس ګندګى ده د هغوى باطن او د هغوى عقيدې پليتې دى. په آخرت كښې د هغوى ځائ دوزخ دې اودادهغوى دعملونويعنى دهغوى دخطاګانو صحيح بدله ده او دا ئى هم اوخودل كه چرې ته د هغوى نه د قسمونوپه وجه راضى شې خو الله ﷻ به د هغه خلقو نه راضى كيږى نه څوك چه د الله ﷻ د اطاعت اود رسولانو دحكم منلونه باهر شوى دى. هغه خلق فاسقان دى اودفسق لغوى معنى باهر وتل دى.وائى چه ﴿الفارة فويسقة﴾يعنى مږه دخرابواو فساد دپاره دخپلې سورې نه راوځى.اوداهم وئيلې شى﴿فسقت الرطبة﴾يعنى دډالونه دكهجوروغونچې راووتلې.

| اَلْاَعْرَابُ اَشَدُّ | كُفْرًا | وَّنِفَاقًا | وَّاَجْدَرُ | اَلَّا يَعْلَمُوْا حُدُوْدَ |
|---|---|---|---|---|
| دباندې خلق زيات سخت دى | په كفركښې | اوپه منافقت كښې | اوزياته مناسبه خبره ده | چې پوهه نه وى په حدونو |
| اونفاق كښې ډير سخت دى | هغوئ دپاره هم دغه شان خبره پكاروه | | | چې الله ﷻ دباندېچيان (منافقان) په كفر |
| مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ | عَلٰى رَسُوْلِهٖ | وَاللّٰهُ | عَلِيْمٌ | حَكِيْمٌ |
| دهغه دين باندې | چې نازل كړې دى الله | په رسول خپل باندې | اوالله | ښه پوهه دې | ښه حكمت والا دې |
| په خپل پيغمبر كوم حكمونه نازل كړى دى | دهغې حدونه اونه پيژنى | الله په هرڅه پوه دې | | دحكمت خاوند دې |
| وَمِنَ الْاَعْرَابِ | مَنْ | يَّتَّخِذُ | مَا يُنْفِقُ | مَغْرَمًا وَّيَتَرَبَّصُ |
| اودباندېچيانونه | خينى هغه څوك دى | چې نيسى | هغه څه | چې خرچ كوى | تاوان | اوانتظار كوى |
| او په باندېچيانو كښې بعضې كسان داسې دى | چې دالله ﷻ په لار كښې كوم خرچ كوى | | | نوهغه نقصان ګڼړى |
| بِكُمُ | الدَّوَآئِرَ | عَلَيْهِمْ | دَآئِرَةُ السَّوْءِ وَاللّٰهُ | سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ |
| په تاسو باندې | دګردش دزمانې | دې په دوئ باندې | ګردش دبدئ | اوالله | اوريدونكې | پوهه دې |
| اوپه تاسوباندې دانقلاب راتلو انتظار كوى | خو هم په دوئ خراب وخت راتلونكې دې | | | اوالله آوريدونكې اوبوهه دې |
| وَمِنَ الْاَعْرَابِ | مَنْ | يُّؤْمِنُ | بِاللّٰهِ | وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَيَتَّخِذُ |
| اوخينى دباندېچيانونه | هغه څوك دى | چې ايمان لرى | په الله باندې | اوپه ورځ دآخرت باندې | اونيسى |
| اوپه باندېچيانو كښې خينې خلق داسې هم دى | چې په الله ﷻ يقين ساتى | | | او كوم خرچ چې كوى |

| مَا | يُنْفِقُ | قُرُبٰتٍ | عِنْدَ اللّٰهِ | وَصَلَوٰتِ | الرَّسُوْلِ ۭ | اَلَآ | اِنَّهَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هغه څه | چي خرج كوي | ذريعه دنزديكت | په نزد الله | اوذريعه دِدعاګانو | درسول | خبردار | بیشکه دا |
| هغه دالله ﷻ په دربار كښي دنزديكت او دپيغمبر نه ددعا اخستلو ذريعه ګڼي | | | | | | | بيشكه ددوئ دا خرڅ كول |
| قُرْبَةٌ | لَّهُمْ ۭ | سَيُدْخِلُهُمُ اللّٰهُ | فِيْ رَحْمَتِهٖ ۭ | اِنَّ اللّٰهَ | | | |
| ذريعه دنزديكت ده | دپاره ددوئ | ضروربه داخل كړي دوئ لره الله | په رحمت خپل كښي | بيشكه الله | | | |
| ددوئ دنزديكت ذريعه ده \| الله ﷻ به ئي ډيرزرد خپل رحمت دسيوري لاندې راولي \| بيشكه الله ﷻ | | | | | | | |
| غَفُوْرٌ | رَّحِيْمٌ ۹۹ | | | | | | |
| بښونكي | مهربان دې | | | | | | |
| بښونكي مهربان دې | | | | | | | |

قوله تعالى:: اَلْاَعْرَابُ اَشَدُّ كُفْرًا وَّنِفَاقًا

**د اعرابو مزاج اوطبيعت پښان د كفر او نفاق سختي:** الله ﷻ خبروركړي چه په اعراب كښي كافران هم وي اومؤمنان هم.دهغوى كفر اودهغوى نفاق د نوروپه نسبت ډيرزيات سخت وي اوهغه ددې خبرې سزا واروى چه الله ﷻ پخپل رسول ﷺ باندې كوم حدود اواحكام نازل كړي وى دهغې نه بې خبرپاتې شي.

**د يو باندېچي قصه:**:لكه چه اعمش د ابراهيم رحمه الله نه روايت كړې دې چه يو اعرابى بدوى زيدبن صوحان سره ناست وو او هغه خپلو ملګرو سره خبرې كولې اود نهاوند په جنګ كښي د هغه لاس پرې شوې وو. اعرابى ته ئې اووئيل چه ستا خبرې خو ډير ښكلې دى اوته ډير ښه سړې معلوميږې خودا ستا پرې شوې لاس باره كښې زما شك پيدا كيږى نو زيد اووئيل چه زما په پرې شوى لاس باندې ستا ولې شك پيدا كيږى داخو كس لاس دې.نواعرابى اووئيل په الله قسم زه نه پوهيږم چه په غلاكښې كس لاس پريكولې شى كه ښې لاس.زيد بن صوحان اوفرمائيل چه الله ﷻ رښتيا فرمائيلى دى ﴿اَلْاَعْرَابُ اَشَدُّ كُفْرًا وَّنِفَاقًا وَّاَجْدَرُ اَلَّا يَعْلَمُوْا حُدُوْدَ مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ ۭ﴾ يعنى داكفار اعراب هم د دې خبرې سزاوار دى چه د الله ﷻ د حدودو نه ناخبره دى.

امام احمد رحمه الله په اسناد د ابن عباس رضي الله عنه روايت كړې دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه كوم څوك په صحرا كښې سكونت اختيار كړى نوهغه سخت زړه شى او څوك چه په ښكاريسې منډې وهى هغه په غفلت كښې پريوزى اوچا چه د يو بادشاه سره ناسته اختياركړه هغه فتنې سره مخ شو. په ابوداؤد ترمذى اونسائى كښې[1] هم د ابوسفيان ثورى رحمه الله نه داحديث مروى دې.ترمذى دې ته حسن غريب وئيلې دې.د ثورى رحمه الله نه علاوه دبل چا نه د روايت مونږ ته علم نشته. په بدوانو كښې بدمزاجى شاړوالې اوبدتميزى وى پدې وجه په دوى كښې الله ﷻ خپل رسول نه دې پيداكړې.د نبوت بعثت اكثر په ښاريو اومهذب خلقو كښې كيږى. لكه چه الله ﷻ فرمائى ﴿وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ اِلَّا رِجَالًا نُّوْحِيْٓ اِلَيْهِمْ مِّنْ اَهْلِ الْقُرٰى ۭ﴾ يعنى مونږ چه تانه وړاندې څومره پيغمبران عليهم السلام د انسانانوطرف ته ليګلې دى هغوى ټول د ښاريو او مهذب وو. يوځل يو اعرابى خپله هديه رسول الله ﷺ ته راوليګله نو ترهغه وخته پورې د هغه زړه خوشحاله نه شوتركومې چه حضور ﷺ دهغې په څوواره زياته هغه له اونه ليګله.حضور ﷺ اوفرمائيل

---

[1] ابوداؤد كتاب الصيد باب اتباع الصيد: ۲۸۵۹ وسنده حسن، ترمذى: ۲۲۵٦، نسائى: ٤٣٢٤، احمد: ۱/ ۳۵۷.

چه اوس ما اراده کړې ده چه د قريشي ثقفي انصاري او دوسي نه علاوه به د بل چا هديه نه قبلوم[۱].
ځکه چه داخلق متمدن ښاريان دي، په مکه مدينه طائف او يمن کښې اوسيږي. په اخلاق کښې دوی د
بدوانونه ډير ښه دي ځکه چه اعرابي ډير شاړ وي.

**درسول الله ﷺ ماشومانو سره محبت:**-دمسلم شريف حديث په سند د حضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت
دې چه يوځوبدوان درسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شواوونې وئيل چه آياتاسوخپل بچي ښکلونې؟
نو صحابه کرامو رضي الله عنهم وئيل اؤ. نو هغه بدوانو اووئيل چه په الله قسم مونږ خو ئې نه ښکلوو. نو رسول
الله ﷺ اوفرمائيل چه الله ﷻ ستاسو د زړونونه مينه او رحم ويستلې دې نو د هغې خو زه ذمه وار نه يم
[۲] او الله ﷻ ښه خبر دې د هغه خلقو نه ځوك چه د دې خبرې مستحق دی چه هغوی ته علم اود ايمان
توفيق ورکړې او په خپلو بنديګانو کښې علم، جهل، ايمان کفر اود نفاق تقسيم ډير په علم کامل سره
کړې دې. هغه چه دخپل علم او حکمت سره څه کوی نو په هغې باندې ځوك رانيول کولې شي. الله ﷻ
خبرورکړې دې چه په دوی کښې دا بې وقوفان هم شته چه د الله ﷻ په لارکښې څه خرچ کوی نو هغه
تاوان اوخساره ګڼړی او په تاباندې د حادثاتو او آفاتو په انتظارکښې دی.خودا حوادث به هم په دوی
وروابس کيږي او ګرځيدو راګرځيدو سره به هم په دوی نازليږي. الله ﷻ د خپلو بنديګانو آواز
اوريدونکې دې.پدې خبره پوهيږي چه دخذلان او نامرادئی ځوك حقدار دی اود امداد او کاميابئ
ځوك حقدار دی.

**په اعرابو کښې ښه خلق هم شته:**:اود اعرابو يو بل قسم ممدوح دې دا هغه خلق دی چه د الله ﷻ په
لار کښې څه خرچ کړی نو دا د الله ﷻ سره د نيزديکت او خوښئ يوه ذريعه ګڼړی. او غواړی چه د دې
په سبب د خان د پاره د رسول الله ﷺ نه د خير دعاګانې حاصلې کړی. او يقيناً دا خرچ کول به د هغوی د
پارد د الله ﷻ د نيزديکت سبب وی او الله ﷻ به هغوی په خپل رحمت کښې داخل کړی. الله ﷻ عزوجل
ډير غفور او رحيم دې.

| وَالسّٰبِقُوْنَ | الْاَوَّلُوْنَ | مِنَ الْمُهٰجِرِيْنَ | وَالْاَنْصَارِ | وَالَّذِيْنَ |
|---|---|---|---|---|
| | اولني | دمهاجرينو نه | اودانصارونه | اوهغه کسان |
| اوهغه مهاجرين او انصارچي دټولونه رومبي ئې ايمان ته سبقت کړي دي | | | | اوځوك چي |

| اتَّبَعُوْهُمْ | بِاِحْسَانٍ | رَّضِيَ اللّٰهُ | عَنْهُمْ | وَرَضُوْا | عَنْهُ |
|---|---|---|---|---|---|
| چي روستوراغلل په دوئ پسي | په نيکئ سره | راضي شوالله | دهغوئ نه | اوراضي شوهغوئ | دهغه نه |
| په اخلاص وروپسي روان شوی دی | دهغوئ ټولونه الله ﷻ راضي شوي دي | | | اوهغوئ دالله ﷻ نه راضي دي | |

| وَاَعَدَّ | لَهُمْ | جَنّٰتٍ | تَجْرِيْ | تَحْتَهَا | الْاَنْهٰرُ | خٰلِدِيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوتيار کړی دی الله | دپاره دهغوئ | باغونه | چي بهيږی | لاندې دهغې نه | نهرونه | هميشه به اوسي |
| اوداسې باغونه ئې ورله تيار کړی دی | چي دهغې لاندې ولې بهيږی | | | | هميشه هميشه به په کښې اوسيږی | |

[۱] ترمذی کتاب المناقب باب فی ثقيف وبنی حنيفة: ۳۹۴۵ وسنده حسن، ۱۳۴٦ متفق عليه، ابوداؤد:۳۵۳۷وهوصحيح،
نسائی: ۳۷۹۰،مختصراً، ابن حبان: ٦۳۸٤،مجمع الزوائد: ۱٤۸/٤.

[۲] صحيح بخاری کتاب الادب باب رحمة الولد وتقبيله ومعانقته:۵۹۹۸، صحيح مسلم: ۲۳۱۷، احمد:٦/۵٦.

فِيْهَآ اَبَدًا ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ

| په هغې كښې | تل ترتله | دا | كاميابى ده | لويه |
|---|---|---|---|---|

دا ډيره لويه كاميابى ده |

**قوله تعالى::** وَالسّٰبِقُوْنَ الْاَوَّلُوْنَ

**مهاجرين او انصاراودهغوى منونكي:** الله ﷻ خبروركوى چه زه ددې مهاجرينو انصارو او تابعينو نه راضى يم كومو چه زما په رضامندئى او خوشحالولوكښې وړاندې والې كړې دې اوزما خوشحالې داسې ثابته ده چه ما د هغوى د پاره د جنتونو نعمتونه تيار كړى دى.

**سابقين اولين څوک دى؟:** شعبى رحمة الله عليه وائى چه په مهاجرينو اوانصاروكښې سابقين اواولين هغه دى كومو چه د حديبيه په جنګ كښې د بيعت رضوان عزت حاصل كړې وو. او شعبى رحمة الله عليه، حضرت موسى اشعرى رضى الله عنه، سعيدبن المسيب رحمة الله عليه، محمد بن سيرين رحمة الله عليه، حسن رحمة الله عليه اوقتاده رحمة الله عليه وئيلى دى چه دا هغه خلق دى كومو چه رسول الله ﷺ سره د قبلتين طرف ته مونځ كړې وو.

محمدبن كعب رضى الله عنه القرظي وائي چه حضرت عمر بن الخطاب رضى الله عنه يو سړى سره خواكې تيرشو اوهغه دا آيت لوستلو ﴿وَالسّٰبِقُوْنَ الْاَوَّلُوْنَ مِنَ الْمُهٰجِرِيْنَ وَالْاَنْصَارِ﴾نو حضرت عمر رضى الله عنه د هغه لاس اونيولو اوتپوس ئى ترې اوكړو چه دا تاته چا خودلې دې؟ هغه وئيل ابى بن كعب رضى الله عنه. ورته ئى اووئيل چه ښه ده زه تا ابى له بوځم چه تپوس ترې اوكړو. كله چه حضرت ابى بن كعب رضى الله عنه ته اورسيدل نوتپوس ئى اوكړو چه آيا تادا آيت داسې لوستل خودلى دى؟ ابى بن كعب رضى الله عنه اوفرمائيل چه او. نو بيا ئى تپوس اوكړو آيا تا دا د رسول الله ﷺ نه داسې لوستلې اوريدلې؟ونيل او. حضرت عمر رضى الله عنه اوفرمائيل چه مونږ هغه اعلى او اوچته درجه مونلې چه زمونږ نه پس نور څوك دا منزل نه شى حاصلولې. حضرت ابى بن كعب رضى الله عنه اوفرمائيل چه د دې آيت تصديق په سورة جمعه كښې هم دې يعنى ﴿وَّاٰخَرِيْنَ مِنْهُمْ لَمَّا يَلْحَقُوْا بِهِمْ ۭ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ﴾او په سورة حشر كښې هم ﴿وَالَّذِيْنَ جَاۗءُوْ مِنْۢ بَعْدِهِمْ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا وَلِاِخْوَانِنَا الَّذِيْنَ سَبَقُوْنَا بِالْاِيْمَانِ وَلَا تَجْعَلْ فِيْ قُلُوْبِنَا غِلًّا لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا رَبَّنَآ اِنَّكَ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ﴾اوسورة انفال كښې هم﴿وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْۢ بَعْدُ وَهَاجَرُوْا وَجٰهَدُوْا مَعَكُمْ فَاُولٰۗىِٕكَ مِنْكُمْ﴾ابن جرير رحمة الله عليه ددې روايت كړې دې اوونيلى دى چه حسن بصرى رحمة الله عليه به د﴿وَالْاَنْصَارِ﴾ لفظ پيښ سره لوستلو.او ﴿وَالْاَنْصَارِ﴾ باندې به ئى عطف كرخولو.نو عبارت داسې شو چه د مهاجرينونه سابقين اولين انصار او د هغوى تابعينو نه الله ﷻ راضى دې.

**دصحابه كرامو په دښمنانو افسوس::** افسوس په هغه خلقو چه د صحابه كرامو رضى الله عنهم سره بغض ساتى هغوى ته كنځلې كوې يا بعضې صحابه كرامو رضى الله عنهم ته بدې ردې وائى. خاص كر هغه صحابى چه د ټولو صحابه كرامو رضى الله عنهم سردار دې،دپيغمبر ﷺ جانشين دې اود حضور ﷺ نه پس د هغه درجه ده او چاته چه په صحابه كرامو رضوان الله اجمعين كښې افضليت حاصل دې يعنى حضرت صديق اكبراو خليفه اعظم ابوبكر بن قحافه رضى الله عنه. درافضيانو نامراده ډله د افضل صحابه سره دښمنى ساتى. هغوى ته كنځلې او بدې ردې وائى.ددا سې حركت نه د الله ﷻ پناه. دا څيز په دې خبره باندې دلالت كوى چه د هغوى عقلونه اولټه شوى دى اود هغوى زړونه اولټه شوى دى.كه هغه بد بخت هغه خلقو ته كنځل اوكړى چاته چه الله ﷻ راضى شوى دې اوپه قرآن پاك كښې هغوى ته دخپلې رضامندئى سند وركړې دې نو بياپه كومه خله هغوى په قرآن پاك دايمان راوړو دعوه كوى.اوس ئى په قرآن باندې ايمان چرته پاتې شو

**د اهل سنت علامت او نخښه::** اهل سنت د دې صحابه كرامو رضوان الله اجمعين قدر كوى اود دوى نه راضى دى د چانه چه الله ﷻ راضى دې. كه دا اهل سنت بدې ردې وائى نو هغوى ته چاته چه الله ﷻ

اودهغه رسول ﷺ پخپله بدې ردې ونیلې دي. اوهغه خلق دوستان ساتي کومو ته چه الله ﷻ دوست ونیلي دي اودهغوی مخالف دی دچا چه الله ﷻ پخپله مخالف دې.دا اتباع هدایت کوی. د نبی کریم ﷺ اقتداء کوی اوپه مذهب او عقیدوکښې نوې نوې خبرې نه راوباسی. خلاصې موندونکې اود مؤمنانو بندیګانو ډله هم دغه ده.

| وَمِمَّنْ | حَوْلَكُمْ |
|---|---|
| اوخینی دهغه کسانونه | چې چاپیره ستاسونه دی |
| اوستاسو نه ګیر چاپیره په بانډیچیانو کښې ډیر کسان منافقان دی | |

| مِّنَ الْأَعْرَابِ | مُنَافِقُونَ | وَمِنْ | أَهْلِ الْمَدِينَةِ | مَرَدُوا |
|---|---|---|---|---|
| دبانډیچیانونه | منافقان دي | اوخینی | دمدینې داوسیدونکونه دی | چې عادت نې نیولې دې |
| اودمدینې په خلقو کښې هم داسې کسان دی | چې په منافقت کښې کمال ته رسیدلی دی | | | |

| عَلَى النِّفَاقِ | لَا تَعْلَمُهُمْ | نَحْنُ نَعْلَمُهُمْ | سَنُعَذِّبُهُمْ | مَّرَّتَيْنِ |
|---|---|---|---|---|
| په منافقت کښې | نۀ پیژنې تۀ هغوی | مونږه پیژنو هغوی | زر به په عذاب کړو مونږ هغوی | دوه خله |
| ته ئې پیژنې(خو)مونږئې ښه پیژنو | مونږبۀ ورته(دنیا کښې) دوه سزاګانې ورکړو | اوبیا (اخرت کښې) | | |

| ثُمَّ | يُرَدُّونَ | إِلَىٰ عَذَابٍ | عَظِيمٍ ﴿۱۰۱﴾ |
|---|---|---|---|
| بیا | به واپس کړې شی هغوی | عذاب | لوی ته |
| به لوئې عذاب ته اوسپارلې شی | | | |

**قوله تعالی:: وَمِمَّنْ حَوْلَكُم مِّنَ الْأَعْرَابِ مُنَافِقُونَ**

د منافقانوباره کښې معلومات اوحضرت حذیفه رضی الله عنه:- الله ﷻ خپل رسول ﷺ ته خبرورکوی چه د عربو قبائلو کښې څوك دمدینې په اطرافو کښې اوسیږی نوبعضې منافقان دی اوپخپله په مدینه کښې اوسیدو نکی هم بعضې په حقیقت کښې منافقان دی. اوخپل نفاق سره ګرځی اود منافقت نه منع کیږی نه. نو ونیلې شی شیطان مریدومارد اوتمردفلان علی الله یعنی فلانکې د الله ﷻ نافرمانی او سرکشی اوکړه.دالله ﷻ ارشاد ﴿لَا تَعْلَمُهُمْ نَحْنُ نَعْلَمُهُمْ﴾ دالله ﷻ د دې قول ﴿وَلَوْ نَشَاءُ لَأَرَيْنَاكَهُمْ فَلَعَرَفْتَهُم بِسِيمَاهُمْ وَلَتَعْرِفَنَّهُمْ فِي لَحْنِ الْقَوْلِ﴾ منافی اومتضاد نه دې.یعنی ته دوی نه پیژنې مونږ دوی ښه پیژنو.اوداقول چه که مونږ اوغوارونوتاته به اوښایو چه هغوی څنګه دی نو بیا به نی ته اوپیژنې. د هغوی شکل کتوسره به دهغوی د ګګو وګو خبرونه اوپیژنې. دواړه آیاتونه په خپلوکښې متضاد نه دی. څکه چه دا یو داسې قسم څیز دې چه د دې په ذریعه د دې صفات په نښه کیږی. هغه پیژندلې کیږی اوا خبره نه ده چه ته ټول منافقان په یقین سره پیژنې. ته په مدینې والا کښې بعضې هغه منافقان پیژنې چه شپه ورځ ملاویږی او کوم چه به تا سحر ماښام کتل، په صحیح توګه د دې تصدیق د دې روایت نه هم کیږی کوم چه امام احمدپه سندجبیر بن مطعم رضی الله عنه سره روایت کړې دې. چه جبیر رضی الله عنه فرمانی ما عرض اوکړو یارسول الله ﷺ! هغه خلق ګمان کوی چه په مکه کښې مونږ ته څه اجر ملاؤ نه شو. نوحضور ﷺ اوفرمائیل اې جبیر! تاسوخلقو ته به خپل اجر ضرورملاویږی که ناسو په مکه کښې نه که د لومبړې په غارکښې ولې نه ئې. بیا حضور ﷺ زما طرف ته سر ټیټ کړو او د راز په شکل کښې اوفرمائیل زما په

صحابوکښې بعضې منافقان هم دی(۱)مطلب دا چه بعضې منافقان داسې ګکې وګې خبرې کوی په کوموکښې چه هیڅ صداقت نه وی.نو د هم یود دې قسم کلام وو کوم چه جبیر بن مطعم‌ؓ اوریدلې وو(وَهَمُّوا بِمَا لَمْ يَنَالُوا) په تفسیرکښې داخبره بیان کړې شوې ده چه نبی کریم‌ﷺ حضرت حذیفه‌ؓ ته دا خبره خودلې وه چه څوارلس یاپنځلس متشخص کسان داسې دی چه په حقیقت کښې منافقان دی اوداتخصیص ددې خبرې مقتضی نه دې چه هغوی د دې ټولونومونه پیژندل د هغوی دتشخص اوعینیت نه خبر وو.والله اعلم.

**دچا په ٠ازونو پسې لګیدل او د چا باره کښې یقینی د جنت اویاجهنم حکم نه دی پکار:**:حافظ ابن عساکر ترجمه ابوعمر البیروتی کښې په اسناد او روایت کولوسره اووئیل یوسړې چه د هغه نوم حرمله وو، حضور‌ﷺ له راغلو او وئې وئیل چه ایمان خودلته دې او خپلې ژبې ته ئې اشاره اوکړه او نفاق دلته دې اشاره ئې په خپل لاس د زړه طرف ته اوکړه اود الله ﷻ نوم ئې هم واخستو څه داسې. نورسول الله ﷺ اوفرمائیل اې الله ته د ده ژبه ذکر کونکې جوړه کړې او زړه ئې شکرکونکې اوده ته زما محبت ورکړې اود هغه چا محبت ورکړې څوك چه ماسره محبت کوی. اودې ټول د خیر کارونوطرف ته اوکرځې. اوس د هغه ټول منافقت لرې شو او وئې وئیل اې رسول الله‌ﷺ زما اکثر ملګری منافقان دی اوزه د هغه ټولو سردار ووم.زه هغه ټول تاسوله لاس نیولې رانه ولم؟حضور‌ﷺ اوفرمائیل چه څوك ماله پخپله راشی نومونږ د هغوی د پاره د الله ﷻ نه بښنه غواړو او څوك چه په نفاق کښې اصرار کوی الله ﷻ به هغه سره ګوری ته د چا راز مه ښکاره کوه. هم داسې روایت ابواحمدالحاکم هم کړې دې. د دې آیت باره کښې قتاده ؒ وائی چه دې خلقو باندې څه شوی دی چه بې تکلفه په خلقو باندې خپل دا علم او یقین ښکاره کوی چه فلانکې جنتی دې او فلانکې دوزخی دې. اوکه پخپله د هغه نه تپوس اوکړې چه اوښایه دوزخی ئې که جنتی؟ نو وائی ماته پته نشته. حالانکه سړې خود خپل خان متعلق ښه او بهتر طریقه باندې پوهیدلې شی کوم چه د نورو باره کښې پیژنی چه دوزخی دې که جنتی نو هغوی خود داسې خبرې دعوی کوی د کومې دعوه چه انبیاء علیهم السلام هم نه ده کړې.

د الله ﷻ نبی حضرت نوح‌ؑ فرمائیلی وو(وَمَا عِلْمِي بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ) یعنی زه نه پیژنم چه هغه څه کوی اودالله ﷻ نبی حضرت شعیب‌ؑ فرمائیلی وو(بَقِيَّتُ اللَّهِ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ وَمَا أَنَا عَلَيْكُم بِحَفِيظٍ) الله ﷻ سره ستاسودپاره خیر دې که تاسومؤمنان ئې اوزه خو په تاسو باندې نګران کار یا ذمه وار نه یم. او الله ﷻ دخپل نبی د پاره فرمائیلی(لَا تَعْلَمُهُمْ نَحْنُ نَعْلَمُهُمْ) یعنی ته نه پیژنې مونږ پیژنو.

**د منافق رسوائی او دوه ځله عذاب ورکولو مطلب:**:حضرت ابن عباس‌ؓ نه د دې آیت باره کښې روایت دې چه حضور‌ﷺ یو خل دجمعې خطبه ورکولو دپاره اودریدو اووئې فرمائیل اې فلانکو فلانکو خلقو تاسو د جمات نه اوځئ تاسو منافقان ئې. ډیر په رسوائې سره هغوی د جمات نه اووتل. هغوی د جمات نه وتل اوحضرت عمر‌ؓ راننوتلو. نوعمر‌ؓ دا اوګنړل چه خلق واپس کیږی کیدې شی چه دجمعې مونځ اوشواوشرمیدو او دشرم د وجې هغه د دې خلقو نه پټیدو اودې خلقو هم د عمر‌ؓ نه خپل خان پټولو هغوی دا ګنړل چه حضرت عمر‌ؓ ته هم زمونږ ددې نفاق علم شوې دې.کله چه عمر‌ؓ جمات ته راغلو نومعلومه شوه چه لامونځ نه دې شوې او یو مسلمان هغوی ته خبرورکړو چه اې عمر‌ؓ! خوشحاله شه نن منافقان الله ﷻ رسوا کړل. ابن عباس‌ؓ فرمائی چه دا د جمات نه ویستل اولنې عذاب دې او دویم عذاب، عذاب ورکول د قبر به وی.(۲)

---

(۱) احمد:۴/۸۳، مسندابی یعلی:۷۴۰۵.

(۲) المعجم الاوسط:۷۹۶.

ثوري رحمه الله په دې سند سره هم دا ونيلى دی. مجاهد رحمه الله د الله ﷻ دارشاد ﴿سَنُعَذِّبُهُم مَّرَّتَيْنِ﴾ باره كښې ونيلي دى چه دې نه مراد قتل او قيد دې. او په يوبل روايت كښې ولږه اوعذاب قبر سره تعبيركړې دې. بيا به هغوی عذاب عظيم ته رابندولې شی.د ابن جريج رحمه الله وينا ده چه عذاب قبر مراد دې او بيا عذاب عظيم يعنى ددوزخ په عذاب كښې به راګيرولې شی. حضرت حسن بصرى رحمه الله فرمانى د دنيا اوقبرعذاب مراد دې.عبدالرحمن بن زيد رحمه الله وانى چه د دنياعذاب د مالونو او اولادو فتنې عذاب دې بيانې دالله ﷻ دا ارشاد اولوستلو﴿فَلَا تُعْجِبْكَ أَمْوَالُهُمْ وَلَا أَوْلَادُهُمْ ۚ إِنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيُعَذِّبَهُم بِهَا فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا﴾ يعنى د دې كافرانومالونه او اولاد دې تاسو په حسد كښې نه اخته كوی د الله ﷻ رضا داده چه د دې څيزونو په ذريعه د دنيا په ژوندكښې الله ﷻ هغوی په عذاب كښې اخته كړی څكه چه دا تكليفونه د هغوی دپاره عذاب دې خو د مؤمنانو د پاره د ثواب ذريعه ده. اود آخرت د عذاب نه مراد د دوزخ عذاب دې. محمد بن اسحاق رحمه الله ونيلى دى چه د رومبى عذاب نه مراد هغه عذاب دې چه كوم چه داسلام په خوريدلو سره هغوی ته رسيدلې دې.اوچه په هغوی باندې دا دومره ډير غم او افسوس شروع شوې دې. دويم عذاب د قبر عذاب دې اوعذاب عظيم هغه دې كوم به چه په آخرت كښې هغوی ته ملاوېږی اود هميشه هميشه د پاره به ملاوېږی.سعيد د قتاده رحمه الله نه روايت كړې دې چه حضور ﷺ حضرت حذيفه رضي الله عنه په غوږ كښې اوفرمائيل چه دولس منافقان دی په دوی كښې د شپږو د پاره دبيله كافى ده دا د دوزخ د اُور يوه شغله ده چه د هغوی په اوږدو باندې به لګى اود سينې پورې به رسی يعنى د خيټې دننه بيمارو سره به مرى او باقى شپږ به په خپل مرګ مرى.(١)

سعيد رحمه الله مونږ ته بيان كړې چه حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه چه به كله څوك مركيدونكې ليدو اود هغوی په نظر كښې به شك من وو نود حذيفه رضي الله عنه طرف ته به نې كتل.كه هغه به د دې مړی د جنازې مونځ كولو نوبخپله به نې هم كولو په دې يقين سره چه دا مړې د هغه دولسو منافقانونه نه دې اوكه حذيفه رضي الله عنه به نه كوله نو بيا به نې پخپله هم نه كوله. معلومه شوه چه حضرت عمر رضي الله عنه د حضرت حذيفه رضي الله عنه نه دا هم معلوم كړی وو چه د الله ﷻ قسم اوخوره اوښايه چه زه خو په دغه دولسوكښې نه يم نوحضرت حذيفه رضي الله عنه ونيلې وو چه نه ته نه نې خو ستاسو نه علاوه زه د بل چا ذمه وارى نه اخلم.

| وَآخَرُونَ | اعْتَرَفُوا | بِذُنُوبِهِمْ | خَلَطُوا | عَمَلًا صَالِحًا |
|---|---|---|---|---|
| اوځينى نور خلق دى | چې قائله شوی دی | په ګناهونو خپلو | اچې ګډ كړې دي هغوی | عمل نيك |
| اوبعضې نوركسان داسې دی | اچې دخپلو ګناهونو اقرار كوی | او څه نيک اوڅه بدعملونه ئې ګډوډ كړی | | |

| وَآخَرَ سَيِّئًا | عَسَى اللَّهُ | أَن يَتُوبَ | عَلَيْهِمْ | إِنَّ اللَّهَ | غَفُورٌ | رَّحِيمٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوبل بد | نزدې دی الله | چې رجوع اوكړی | په هغوی باندې | بيشكه الله | بښونكې دی | مهربانه دې |
| دی اميد دې چې الله ﷻ به ددوی توبه قبوله كړی | | | | بيشكه الله ﷻ بخښونكې مهربان دې | | |

**قوله تعالى: خَلَطُوا عَمَلًا صَالِحًا**

د مستثنى نه بچ كيدل پكار دی:- كله چه الله ﷻ د دې منافقانو حال بيان كړو څوك چه دمسلمانانو سره په جهاد كښې شريكيدونه پاتې شوی وو.اود جنګ دشركت نه نې ډډه كړې وه،دتكذيب اوشك مظاهره نې كړې وه. نو بيا د دې ګناهګارانو ذكر شروع كوی كوم چه د جنګ د شركت نه منع شوی وو

(١) دارروايت مرسل دې خوهم دا روايت متصلاً صحيح مسلم كتاب صفات المنافقين باب صفات المنافقين واحكامهم: ۲۷۷۹ كښې موجوددې نو دا صحيح دې.

صرف د سستئ او ارام غوښتلو په سبب سره د دې چه هغوی ته د حق تصديق او ايمان حاصل وو. نو الله ﷻ فرمائي دې منافقانو نه علاوه چه کوم نورخلق د جنګ نه پاتې شو هغوی د خپل قصور اعتراف اوکړو. خوداداسې خلق دی چه د دوی نور نيك اعمال هم شته. اود دې نيك عملونو سره خپل بعضې تقصيرات لکه د جهاد نه منع کيدل هم هغوی شامل کړی دی خود دوی دا تقصير الله ﷻ معاف کړی دې. د دې منافقانو تقصير الله ﷻ نه معاف کوی. اود هغوی نور نيك اعمال هم نشته.

**دا ايت عام دې د څه خلقو سره خاص نه دې::** دا آيت سره د دې چه د يو څو مقررو خلقو باره کښې نازل شوې دې خو په ټولو مخلص خطاکارانو اوګناهګارانو باندې هم عام دې. دمجاهد رحمه الله قول دې چه دا د ابولبابه رضی الله عنه باره کښې نازل شوې دې کله چه هغه بنی قريظه ته ونيلي وو چه دا د حلالې ځائ دې او په لاس سره ئې دخپل حلق طرف ته اشاره کړې وه. د ابن عباس رضی الله عنه نه روايت دې چه د ﴿أَخَرُونَ﴾ نه مراد ابولبابه رضی الله عنه اودهغه د ډلې ملګری دی چه په غزوه تبوك کښې د جهاد د شريکيدو نه ډډه کړې وه. بعضو ونيلی دی چه ابولبابه رضی الله عنه سره پنځه سړی نوروو، يا اووه يا نهه اوچه کله رسول الله ﷺ دغزوه تبوك نه واپس شو نو دې خلقوخپل ځان دجمات ستنوپورې اوتړل او قسم ئې خوړلې وو چه ترکومې رسول الله ﷺ مونږ پخپله کولاؤنه کړی مونږ به ځان نه کولاوه وو اوچه کله آيت ﴿ وَأَخَرُونَ اعْتَرَفُوا بِذُنُوبِهِمْ ﴾ نازل شونو رسول الله ﷺ هغوی کولاؤکړل اود هغوی د جنګ کوتاهی معاف کړه. بخاری رحمه الله وائی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه نن شپه دوه سړی ماله راغله او زه ئې يوښار ته راوستلم چه د سرو زرو او سپينوزرو د خښتونه جوړوو هلته مونږ بعضې داسې سړی اوليده د بدن نيمه حصه ئې ښه ښکلې وه اونيمه حصه ئې بدشکله وه چه کتلو ته ئې زړه نه کيدو. زما دې ملګرو هغوی ته اوونيل چه تاسو په دې نهر کښې غوپه اووهئ. د غوپې وهلونه پس چه راووتل نود هغوی دا عيب ختم شو اود هغوی بدنونه ټول ښائسته ښکاره کيدل. زماملګرو ماته اوونيل چه دا جنت عدن دې او هم دغه ستا منزل دې او وئ ونيل چه دغه خلق د چا چه نيم بدن ښائسته وو او نيم بدن بدرنګه د هغې وجه دا ده چه هغوی نيکو اعمالوسره بد اعمال هم يوځائ کړی وو اود الله ﷻ د حدودونه ئې زياتې کړې وو(۱) ددې آيت په تفسير کښې بخاری رحمه الله مختصراً دغه شان روايت کړې دې.

| خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| واخله \| دمالونو دهغوی نه | | | | | | |
| (اې پيغمبره) د دوی د مالونو نه | | | | | | |
| صَدَقَةً | تُطَهِّرُهُمْ | وَتُزَكِّيهِمْ | بِهَا | وَصَلِّ | عَلَيْهِمْ | |
| صدقه \| چې پاك کړې ته هغوی \| اوبرکتناك کړې هغوی \| په هغې سره \| اودرحمت دعاکوه \| په حق دهغوی کښې | | | | | | |
| صدقه وصول کړه \| ...... چې ددې په ذريعه ئې پاك صفا کړې \| د دوی دپاره دعا کوه | | | | | | |
| إِنَّ | صَلَوٰتَكَ | سَكَنٌ | لَّهُمْ | وَاللَّهُ | سَمِيعٌ | عَلِيمٌ |
| بيشکه \| چې دعا ستا \| سبب دتسکين دې \| دپاره دهغوی \| اوالله \| هر څه اوری \| هر څه پيژنی | | | | | | |
| ستا دعا د دوی د تسلئ سبب دې \| ......اوالله ﷻ هر څه اوری په هر څه پوهه دې | | | | | | |

۱) صحيح بخاری کتاب التفسير سورة براءة باب قوله ﴿واخرون اعترفوا بذنوبهم﴾: ۴۶۷۴.

| وَيَأۡخُذُ | عَنۡ عِبَادِهِۦ | التَّوۡبَةَ | يَقۡبَلُ | هُوَ | أَنَّ اللَّهَ | أَلَمۡ يَعۡلَمُوٓاْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اواخلي | دبندګانو خپلونه | توبه | قبلوي | هم هغه | چي بيشکه الله | ايا معلوم نه ده دې خلقو ته |

ايا دوئ نه پوهيږي چي هغه يوازې الله ﷻ دې | چي دخپلو بندګانو توبه قبلوي | اوهم هغه صدقه

| الرَّحِيمُ | التَّوَّابُ | هُوَ | وَأَنَّ اللَّهَ | الصَّدَقَٰتِ |
|---|---|---|---|---|
| رحم کونکي دې | ډيرتوبه قبلونکي دې | هم هغه | او بيشکه چي الله | صدقې |

قبلوي | اوهم هغه الله ﷻ دې چي توبه قبلونکي | اومهربان دې |

**قوله تعالی:: تُطَهِّرُهُمۡ وَتُزَكِّيهِم بِهَا**

**صدقه د مال پاکوالې اود صدق او ايمان علامت دې:.** الله ﷻ رسول الله ﷺ ته حکم ورکړې دې چه د دوی د مالونونه زکوة وصول کوه.دزکوة دامال به هغه صفاجوروی.سره ددې چه بعضو خلقو ﴿أَمۡوَٰلِهِمۡ﴾ ضمير د هغه خلقو طرف ته ګرځولې دې چا چه د خپلو ګناهونواعتراف کړې وو اوبنه اوبد دواړه قسمه عملونه ئی کړيوو.خو په حقيقت کښې دا حکم خاص نه دې بلکه عام دې په دې وجه د عربو په قبيلوکښې بعضو خلقودمانعين زکوة دا عقيده اختيار کړې وه چه امام ته د زکوة اخستلو حق نشته ئودا خبره رسول الله ﷺ سره مخصوص وه. د دې د پاره د الله ﷻ ارشاد دې ﴿ خُذۡ مِنۡ أَمۡوَٰلِهِمۡ صَدَقَةٗ ﴾ نه هغوی دليل اخستې دې.حضرت ابوبکر ؓ اوټولوصحابه کرامو ؓ د دې تاويل او د فاسدفهم ترديد اوکړواوهغوی سره ئی جنګ تر دې چې هغوی د وخت خليفه ته زکوة ورکړو. لکه څنګه چه به هغوی نبی ﷺ ته ادا کولو. تردې چه حضرت صديق اکبر ؓ فرمائيلي وو که چرې هغوی د اوښې يو بچي ياد رسئی يوه ټکړه هم دزکوة رانه حصاره کړه کومه چه به ئی نبی ﷺ ته ورکوله نو د زکوة په منع کولو به زه هغوی سره جنګ کوم.([1])

**صدقه او زکوة ادا کوونکی ته دعا کول پکار دی::** د الله ﷻ ارشاد ﴿ وَصَلِّ عَلَيۡهِمۡ ﴾ يعنی د هغوی د پاره دعا کوه اوبښنه غواړه لکه چه په صحيح مسلم کښې د عبدالله بن ابی اوفی ؓ نه روايت دې چه کله به د چا نه د زکوة مال راتلو نوحضور ﷺ به د الله ﷻ د حکم برابر دهغوی د پاره دعا کوله نوچه کله زما پلار د زکوة مال پيش کړو نو حضور ﷺ اوفرمائيل چه يا الله د ابی اوفی په اولاد باندې رحم اوکړې ([2]) په يوبل حديث کښې دی چه يوې ښځې اووئيل زما اوزما د خاوندد پاره دعااوکړه نو وئی فرمائيل چه الله ﷻ دې په تا اوستا په خاوندباندې رحم اوکرم اوکړی.([3])

د الله ﷻ ارشاد﴿ إِنَّ صَلَوٰتَكَ سَكَنٞ لَّهُمۡ ﴾ستا دعاد هغوی د پاره د زړه د آرام ذريعه ده. بعضو صلوة جمع ګرځولې اوصلوة ئی لوستلې دې اونورو واحد ګرځولوسره﴿ إِنَّ صَلَوٰتَكَ ﴾ لوستلې.ابن عباس ؓ فرمائی چه د سکون معنی درحمت ده او قتاده ؒ ونيلی ددې معنی ده عزت﴿ وَٱللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴾يعنی اې نبی ﷺ! الله ﷻ ستا دعاګانې اوريدونکې دې. او عليم دې چه څوک ستاسو د دعا حقدار دې.

امام احمد ؒ وائی چه وکيع په سند سره روايت کړې دې چه کله به نبی ﷺ د چا دپاره دعا کوله نود

---

[1] صحيح بخاری کتاب الزکاة باب وجوب الزکاة:۱۴۰۰، صحيح مسلم:۲۰.

[2] صحيح بخاری کتاب الزکاة باب صلاة الامام ودعائه لصاحبالصدقة: ۱۴۹۷، صحيح مسلم:۱۰۷۸.

ابوداؤد:۱۵۹۰،احمد:۳۵۳/۴،مسندالطيالسی:۸۱۹.

[3] ابوداؤد کتاب الصلاة (الوتر)باب الصلاة علی غيرالنبی ﷺ ۱۵۳۳وسنده صحيح،احمد:۱۹۸/۳،دارمی:۳۴/۱،ابن حبان:۹۱۶،بيهقی:۱۵۳/۲.

هغه اود هغه د خامنو اونمسو په حق کښې به قبليدله(۱) بيا دابونعيم نه په سند روايت دې چه د نبي ﷺ دعا به د يوسرى د خامنواو نمسو په حق کښې خامخاقبليدله. د الله ﷻ ارشاد دې ﴿أَلَمْ يَعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ هُوَ يَقْبَلُ التَّوْبَةَ عَنْ عِبَادِهِ وَيَأْخُذُ الصَّدَقَاتِ﴾ (۲) يعنى آيا هغوئ ته د دې علم نشته چه الله ﷻ د بنديگانو نيکيانې اخلى اود هغوى دعا قبلوى. د دې نه مقصدخلق توبه طرف ته اوصدقې طرف ته مائل کول دى خکه چه هم دغه دوه څيزونه دى چه انسان د گناهونونه خلاصوى او گناه ختموى. او الله ﷻ خبر ورکړې دې چه څوك هغه ته توبه پيش کړى نوهغه د بنده توبه قبلوى.

**الله ﷻ وړه شان صدقه هم غټوى::** او څوك چه د حلال کسب يوه نوړنى صدقه کوى نو الله ﷻ هغه به خپل ښى لاس باندې اخلى بيا هغه د صدقې ورکونکى د پاره د دې صدقې پالنه کوى اودا د وړې نه لويوى تردې چه د صدقې هغه يوه کهجوره دأحد په شان کيږى. لکه چه هم په دې حديث کښې د رسول الله ﷺ نه روايت دې او لکه څنگه چه وکيع رحمه الله هم د ابوهريره رضي الله عنه په سند سره روايت کړې دې. چه رسول الله ﷺ فرمائيلى دى الله ﷻ صدقه قبلوى اوهغه په خپل ښى لاس کښې اخلى اود هغې پالنه کوى لکه څنگه چه تاسوخپل داس بچې ساتنى او لويونې تردې چه د صدقې يوه نوړنى دأحددغر په شان جوړيږى. د دې تصديق د الله ﷻ عزوجل د کتاب نه هم کيږى. آيا دوى ته علم نشته چه الله ﷻ د خپلو بنديگانوتوبه قبلوى او زکوة اوصدقات اخلى. د الله ﷻ ارشاد دې ﴿يَمْحَقُ اللَّهُ الرِّبَا وَيُرْبِي الصَّدَقَاتِ﴾ الله ﷻ دسود گټه بربادوى او صدقات اضعافًا مضاعفًا زياتوى. امام ثورى رحمه الله په سند د ابن مسعود رضي الله عنه روايت کړې دې چه صدقې مال دسوال کونکى په لاس کښې دپريوتلونه وړاندې د الله ﷻ په لاس کښې پريوزى. بيا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دا آيت تلاوت کړو ﴿أَلَمْ يَعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ هُوَ يَقْبَلُ التَّوْبَةَ عَنْ عِبَادِهِ وَيَأْخُذُ الصَّدَقَاتِ﴾.

**په مال غنيمت کښې غلا کول سخته گناه ده::** ابن عساکر رحمه الله پخپل تاريخ کښې په ضمن دتاريخ عبدالله بن الشاعر السکسکى(چه ددمشق ووخو اصل وطن ئې حمص وواود فقهاوته وو) بيان کړې دې چه د اميرمعاويه رضي الله عنه په زمانه کښې خلقو جهاد اوکړو د کوم سردار چه عبدالرحمن بن خالدبن وليد رضي الله عنه وو. نو يومسلمان د غنيمت د مال نه سل ديناره رومى غبن کړل اوچه کله لښکر واپس شواوخلق کورونو ته لاړل نوهغه پښيمانتيا راگيرکړو. هغه دا دينارونه د لښکر امير ته اورسول هغه د دې د اخستونه انکاراوکړوچه هغه ټول خلق خو خپلو خپلو کورونوته لاړل په کومو چه به دا تقسيم کولې شو. زه خو اوس دا اخستې نه شم ته د قيامت په ورځ دا الله ﷻ ته پيش کړه. اوس دې سړى په صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې دهريونه تپوس اوکړو خو ټولوهم دا ونيل. بيا هغه دمشق ته راغلو او امير معاويه رضي الله عنه ته د قبلولو د پاره پيش کړل خو هغه هم انکاراوکړواوهغه هم په خپل حال د هغه خايه ژړيدونکې واپس شو. وائى عبدالله بن الشاعر السکسکى رحمه الله سره خواکې تيريدم هغه تپوس اوکړو ولې ژاړې؟ ما خپله ټوله واقعه وړاندې پيش کړه چه يو اميرهم دا نه اخلى. نو عبدالله ورته اوونيل چه آيا ته زما خبره اورې هغه ونيل اوخامخا. نو هغه ورته اوونيل چه ته معاويه رضي الله عنه له لاړشه چه کومه پنځمه حصه دبيت المال ده هغه واخله نو شل ديناره دهغه حواله کړه او باقى اتيا ديناره د دې لښکريانو طرف نه خيرات کړه څوك چه د دې حقدارکيدې شو. خکه چه الله ﷻ دخپلو بنديگانوتوبه قبلوى. او الله ﷻ دهغې د نومونو او مقاماتو نه هم خبردې هغه به هغوى ته ددې ثواب اورسوى. نودې سړى هم داسې اوکړه. اميرمعاويه رضي الله عنه اوفرمائيل که چرې ما ده ته داسې فتوى ورکړې وه نوماته به داخبره د خپل ټول مملکت نه محبوب وه، هغه ډير ښه تدبيرخودلې دې.

---

(۱) احمد: ۵/۳۸۵-۳۸۶، مجمع الزوائد: ۸/۲۶۸.

(۲) ترمذي كتاب الزكاة باب ماجاء في فضل الصدقة: ۶۶۲، ابن ابي شيبه: ۳/۱۱۲، احمد: ۲/۴۰۱.

وَقُلِ اعۡمَلُوۡا

اووایه | چې عمل کوئ

اوورته اووایه چې تاسو (نیک) کارونه کوئ

فَسَیَرَى اللّٰهُ عَمَلَکُمۡ وَرَسُوۡلُهٗ وَالۡمُؤۡمِنُوۡنَ ؕ وَسَتُرَدُّوۡنَ

نو گوري | به الله | عمل ستاسو ته | او رسول دهغه | اومومنان | او بیا به واپس راوستلی شئ تاسو

الله ﷻ اودهغه رسول ﷺ اومومنان ستاسو طرز عمل ته گوري | .........اوهغې ذات ته به واپس

اِلٰی عٰلِمِ الۡغَیۡبِ وَالشَّهَادَةِ فَیُنَبِّئُکُمۡ بِمَا کُنۡتُمۡ تَعۡمَلُوۡنَ ۝

هغه ذات ته چې پوهه دې په پټه | اوپه ښکاره | نو خبربه کړي تاسو | په هغه څه | چې وئ تاسو | چې کول به مو

کیږي | چې پټ | و څرګند هرڅه ورته معلوم دي | نوهغه به مو خبرکړي چې تاسو څه کارونه کول.

**قوله تعالی:: فَسَیَرَى اللّٰهُ عَمَلَکُمۡ**

**دسینو رازالله ﷻ چه علیم اوخبیر دې پیژني:-** دمجاهد رحمه الله وینا ده چه داد امرالله د مخالفینو د پاره د الله ﷻ دطرف نه وعیددې چه د دوی عملونه به د الله ﷻ په وړاندې پیش کولې شي.او رسول الله ﷺ اومؤمنانو ته به هم ددوی عملونه ښکاره کولې شي اودقیامت په ورځ به داکیدل خامخا وي.

**په قیامت کښې به هر څه سرګند شي::** لکه چه د الله ﷻ ارشاد دې ﴿یَوۡمَئِذٍ تُعۡرَضُوۡنَ لَا تَخۡفٰی مِنۡکُمۡ خَافِیَةٌ﴾ یعنی دقیامت په ورځ به ستاسو عملونه پیش کولې شي او هیڅ یوه پټه خبره به پټه نه شي پاتې کیدې.
او الله ﷻ فرمانیلی ﴿یَوۡمَ تُبۡلَی السَّرَآئِرُ﴾ یعنی د زړونو پټ رازونه به ښکاره کولې شي.او فرماني ﴿وَحُصِّلَ مَا فِی الصُّدُوۡرِ﴾ یعنی په زړونو کښې چه څه دی ښکاره به کړې شي اودنیا خلق به د دې نه خبر شي. لکه چه امام احمد رحمه الله فرمانیلی دی چه حسن بن موسی رحمه الله په سند مرفوعاً د رسول الله ﷺ نه روایت کړې دې حضور ﷺ اوفرمانیل چه که په تاسو کښې یوکس په سخت کاڼړی کښې هم ځان پټ کړی په کوم کښې چه نه څه سوري وی او نه څه چاودې اوکه په هغې کښې دننه هم څوک پټ عمل کوی نو الله ﷻ به هغه هم په خلقو داسې ښکاره کړی لکه چه دا د هغوی په مخامخ شوې وی([1]) او په حدیث شریف کښې دی چه د دې ژوندواعمال به په دې مړوباندې پیش کولې شي څوک چه د هغوی خپلوان دی یاد هغوی د قبیلې دی او چه به دې وخت کښې په قبرکښې دی لکه څنګه چه ابوداوٗد الطیالسی ونیلی دی.
صلت بن دینار رحمه الله حدیث بیان کړوچه رسول الله ﷺ فرمانیلی دی چه ستا عملونه ستاسو په مړو اقرباء اوعشانرو باندې د هغوی په قبرونو کښې پیش کولې شي.که د خیراعمال وي نوهغوی خوشحالیږی او که بدوی نودعاکوی اې الله ﷻ ته دوی ته دخپل اطاعت توفیق ورکړه([2]) امام احمد رحمه الله وائی چه عبدالرزاق مونږ ته خبر راکړو. چه سفیان د یوسړی نه داسې اوریدلی چه حضرت محمد رسول الله ﷺ اوفرمانیل ستاسوعملونه ستا سو په مړو اقاربواوعشانرو پیش کولې شي که هغه ښه عمل وی نو مړی خوشحالیږی اوکه ښه نه وی نووانی اې الله ﷻ ته ده ته مرګ مه ورکوه تر هغه وخته پورې ترڅو چه ده ته دې هغه هدایت نه وی ورکړې لکه څنګه چه دې مونږ ته راکړې وو([3]) حضرت امام بخاری رحمه الله نه روایت دې چه حضرت عائشه رضی الله عنها نه روایت دې چه کله د یومسلمان نیک عمل ستا خوښ شی نوهغه

---

[1]) احمد:۳/۲۸،مسندابی یعلی:۱۳۷۸، ابن حبان:۵۶۷۸، حاکم:۴/۳۱۴.
[2]) مسندالطیالسی:۱۷۹۴.
[3]) احمد:۳/۱۶۵.

ته وایه کوه الله ﷻ ستا عمل ته ګوري اود هغه رسول اومؤمنان هم ددې نه خبریږي(۱)

**اعتبار دخاتمې دې نه دعمل خو عمل نیک پکار دې::** ددې قسم یو بل حدیث کښې روایت دې چه امام احمد رحمه الله ونیلي په سند دحضرت انس رضی الله عنه سره مروی دی چه رسول الله ﷺ فرمانیلي چه د چا بنه عمل لیدلوسره مه خوشحالیږئ انتظارکوئ چه د هغه خاتمه هم په نیک عمل باندې کیږي اوکه نه. ځکه چه یوعمل کونکې د اوږدې زمانې پورې نیك عملونه کوی اوهغه په دې نیك عمل باندې که مړشي نو به جنت کښې به داخل شي خو ناڅاپې دهغه حالت بدلیږي او هغه خراب عملونه کوی. او یو بنده دامې وی چه د یوې زمانې پورې خراب عملونه کوی که هغه په دې مړی شي نودوزخ ته به ځي خویك دم هغه بدل شي او هغه نیك عمل کوی. الله ﷻ چه کله یو بنده سره د خیراراده اوکړی نودمرګ نه وړاندې هغه ته دنیکئې توفیق ورکړی او هغه په نیکئې باندې مړکیږي خلقوونیل یارسول الله ﷺ دا څنګه کیږي. فرمانې د روح قبض کیدو په وخت کښې هغه په نیك عمل باندې وی.(۲)

| وَاٰخَرُوْنَ | مُرْجَوْنَ | لِاَمْرِ اللّٰهِ | اِمَّا يُعَذِّبُهُمْ |
|---|---|---|---|
| اوځینې نور خلق دی | چې پاتې کړې شوی دی هغوئ | حکم دالله ته | یا به عذاب ورکړی هغوئ له |
| او ځینې نورخلق دی | چې د هغوئ معامله دالله ﷻ حکم ته پاتې ده | | یا به سزا ورکړی |

| وَاِمَّا يَتُوْبُ | عَلَيْهِمْ ۗ وَاللّٰهُ | عَلِيْمٌ | حَكِيْمٌ ﴿۱۰۶﴾ |
|---|---|---|---|
| اویابه مهربانی اوکړی | په هغوئ اوالله | په هرڅه پوهه دې | دحکمت خاوند دې |
| اویابه ئې توبه قبوله کړی | اوالله ﷻ په هرڅه پوهه دې | | صاحب د حکمت دې |

**قوله تعالی:: وَاٰخَرُوْنَ مُرْجَوْنَ لِاَمْرِ اللّٰهِ**

**د جنګ تبوك نه شاته پاتې کیدونکومعامله:-** ابن عباس رضی الله عنه مجاهد رحمه الله عکرمه رحمه الله او ضحاك رحمه الله وغیره ونیلي دی چه دا درې سړی وو د چا د توبې قبلیدل چه شاته پریوتلي وو. هغه مرارة بن الربیع، کعب بن مالك او بلال بن امیه وو او په غزوه تبوك کښې دوی هم هغه خلقو سره ناست وو چا چه په جنګ کښې شرکت نه وو کړی.داتول دسستئې آرام غوښتلو او په دې سبب چه په باغونوکښې میوه پخیدو موسم دې فصل تیار ولاړ وو.د سوری اوسپرلی نه د مزواخستو زمانه وه. دا کوتاهی د شك او منافقت په وجه نه وه،او په دوی‌کښې خو څه خلق داسې وو چه خپل خان ئې ستنو سره تړلې وو لکه ابولبابه رضی الله عنه اود هغه ملګری. نورو څه خلقو داسې اونه کړل اودا پورته درې کسان وو. د ابولبابه رضی الله عنه اود هغه د ملګرو توبه خو د هغوی نه وړاندې قبوله شوې وه اود ذکر شوو خلقوتوبه د قبلیدوپه تعویق کښې پرته وه تردې چه دا آیت نازل شو(۳)﴿لَقَدْ تَّابَ اللّٰهُ عَلَى النَّبِيِّ وَالْمُهٰجِرِيْنَ وَالْاَنْصَارِ﴾ او ﴿ وَّعَلَى الثَّلٰثَةِ الَّذِيْنَ خُلِّفُوْا حَتّٰۤى اِذَا ضَاقَتْ عَلَيْهِمُ الْاَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ ﴾یعنی الله ﷻ دنبی ﷺ مهاجرینواوانصاروتوبه قبوله کړه(دآیت دآخره پورې) اوددې دریوکسانو توبه ئې‌هم قبوله کړه چه د جنګ نه پاتې شوی ووتردې چه دا دومره کولاؤ دنیا په هغوی تنګه شوې وه چه هغوی ته د پناه ځای نه ملاویدلو لکه څنګه چه د کعب بن مالك رحمه الله په حدیث کښې راتلونکی دی اودالله ﷻ ارشاددې﴿ اِمَّا يُعَذِّبُهُمْ وَاِمَّا يَتُوْبُ عَلَيْهِمْ ﴾ یعنی هغوی د الله ﷻ د بښنې لاندې دی که هغه غواړی نو دوی سره به داسې سلوك اوکړی او که غواړی نودغه شان. خود الله

۱) صحیح بخاری کتاب التوحیدباب قول الله تعالی ﴿یاایهاالرسول بلغ ماانزل الیك...﴾ قبل الحدیث: ۷۵۳۰.
۲) احمد: ۳/۱۲۰.
۳) الطبری: ۱۴/۴۶۵.

ﷺ رحمت خود هغه په غضب باندې وراندې والې کوی او الله ﷻ خو د عقوبت مستحق پیژنې چه څوک د بښنې حقدار دې. هغه په خپلو افعالو او اقوالوکښې حکیم دې دهغه نه بغیر بل هیڅ یوالله نشته او نه رب شته.

| وَالَّذِيْنَ |
|---|
| اوخيني هغه کسان دی |
| اوخيني هغه کسان دی چې |

| اتَّخَذُوْا | مَسْجِدًا | ضِرَارًا | وَّكُفْرًا | وَّتَفْرِيْقًا | بَيْنَ الْمُؤْمِنِيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې جوړې کړو | یو جماعت | دپاره دضرر رسولو | اود کفر کولو | اود جدا یئ راوستلو | په منځ دمومنانو کښې |
| یو جمات ئې جوړ کړې دې | | دضرر په غرض | اود کفر دپاره | اود مسلمانانو په مینځ کښې دجدائي راوستو | |

| وَاِرْصَادًا | لِّمَنْ | حَارَبَ اللهَ | وَرَسُوْلَهٗ | مِنْ قَبْلُ ط |
|---|---|---|---|---|
| اوخاني دانتظار کولو | دپاره دهغه چا | چې جنګ کوی دالله سره | اود رسول دهغه سره | دمخکښې نه |
| په نیت | اودهغه چا داستوګنې په خاطر چې پخوا راسې دالله ﷻ اودرسول ﷺ مخالفت کوی | | | |

| وَلَيَحْلِفُنَّ | اِنْ اَرَدْنَآ | اِلَّا | الْحُسْنٰى ط | وَاللهُ | يَشْهَدُ |
|---|---|---|---|---|---|
| او خامخا به قسمونه خوری دوئ | چې اراده نۀ ده کړې مونږ | مګر | دنیکئ | اوالله | ګواهي کوی |
| اودوئ به درته قسمونه خوری | اچې زمونږ غرض دښیګړې نه بغیر هیڅ نه وو | | | او الله ﷻ ګواهي کوی | |

| اِنَّهُمْ | لَكٰذِبُوْنَ ۝ | لَا تَقُمْ | فِيْهِ | اَبَدًا ط | لَمَسْجِدٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې بیشکه دوئ | خامخا دروغژن دی | مۀ ودریږه | په هغې کښې | هیڅ کله | خامخا هغه جومات |
| چې دوئ درغژن دی | ......ته په دغه جمات کښې هیچرې (مونځ ته) مه اودریږه | | | | البته دکوم جمات بنیاد |

| اُسِّسَ | عَلَى التَّقْوٰى | مِنْ اَوَّلِ يَوْمٍ | اَحَقُّ | اَنْ تَقُوْمَ |
|---|---|---|---|---|
| چې بنیادنې ایښودې شوې دې | په تقوی باندې | داولې ورځې نه | هغه زیات لائق دې | چې ته ودریږې |
| چې د اولنئ ورځې نه په تقوی ایخودې شوې دې | | | هغه ددې قابل دې چې ته په هغې کښې | |

| فِيْهِ ط | فِيْهِ | رِجَالٌ | يُّحِبُّوْنَ | اَنْ يَّتَطَهَّرُوْا ط | وَاللهُ | يُحِبُّ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په هغې کښې | په هغې کښې | داسې خلق دی | چې خوښوی | چې پاك اوساتی خان | خپل او الله | خوښوی |
| (مونځ ته) اودریږې | په هغې کښې داسې خلق دی | | اچې پاکه استوګنه خوښوی | | او الله پاک | |

| الْمُطَّهِّرِيْنَ ۝ |
|---|
| خان پاکونکې خلق |
| پاکان خلق خوښوی |

**قوله تعالى:: وَالَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مَسْجِدًا**

**دمنافقانومسجد ضرار اود هغې مقاصد:-** د دې آیات کریمه سبب د نزول دا دې چه د رسول الله ﷺ مدینې ته د تشریف راوړلو نه وړاندې په مدینه کښې د قبیله خزرج یوسړې اوسیدو د هغه نوم عامر راهب وو. دۀ د جاهلیت په ورځوکښې نصرانی شوې وو اود اهل کتابوعلم ئې حاصلې کړې وو. دې د جاهلیت په

زمانه كښې يوعبادت ګذار سړی وواوپخپله قبيله كښې ده ته ډير فضيلت حاصل وو. كله چه حضورﷺ مدينې ته تشريف راوړو اود مسلمانانو حضورﷺ سره غونډه جوړه شوه او اسلام ترقی اوكړه اود بدر په جنګ كښې هم الله ﷻ مسلمانان غالب اوساتل نو په ابوعامر باندې دا خبره ډيره سخته ګرانه پريوتله اوښكاره دښمنی ئی ښكاره كړه. دمدينې نه اوتختيدو اود مكې كافرانو او قريش مشركينو سره يو ځای شو او هغوی ئی رسول الله ﷺ سره په جنګ كولو مائل كول. اوس د عربوټولې قبيلې يوځای شوې د جنګ أحد دپاره ئی وړاندې تګ كولو په نتيجه كښې چه مسلمانانوته كوم نقصان اورسيدو. الله ﷻ په دې جنګ كښې دمسلمانانو ازميښت اوكړوكه دنيانه وی نو عقوبت خود متقيانود پاره دې. دې فاسق دواړوطرفوته صفونوكښې لوئ لوئ كندې اوكنستلې دې كښې په يوه كښې رسول الله ﷺ پريوتلو او هغوی ﷺ ته په دغه ورځ تكليف اورسيدو.دحضورﷺ مخ مبارك زخمی شو دلاندې طرف نه څلور مخامخ غاښونه مبارك شهيدان شو. د حضوراكرم ﷺ سرهم زخمی شو. ابوعامر د جنګ په شروع كښې د خپل قوم انصارو طرف ته وړاندې شو هغوی ئی مخاطب كړل اود خپل امداد اوملګرتيا دعوت ئی وركړو. كله چه انصارو د ابوعامر دا حركت اوكتلو نو وئی وئيل اې فاسقه اې د الله ﷻ دښمنه الله ﷻ دې تا برباد كړی هغه ته ئی كنځلې اوكړې اود هغه بې عزتی اوكړه. اوس هغه دې ويناكولو سره واپس شو چه زما نه پس خو زما قوم نور هم خراب شو.

نبی كريمﷺ د هغه دتختيدونه وړاندې هغه ته دعوت وركړې وو اود قرآن پاك وحی ورته اوروليې وه. خو د اسلام راوړلونه ئی انكار اوكړو اوسركشی اختياركړه. نورسول اللهﷺ ورته بددعا اوكړه چه بدبخته بې وطنه او پرديسی كښې مړشې.دا بددعا د هغه په حق كښې قبوله شوه اوداخبره داسې اوشوه چه كله خلق د جنګ أحد نه فارغ شو او هغه اوكتل چه نبی كريمﷺ خو نوره ترقی اوكړه. اسلام زياتيږی نوهغه د روم ملك هرقل له لاړو اود هغه نه ئی د نبی كريم ﷺ خلاف امداد اوغوښتلو. هغه ورسره وعده اوكړه نوده ته خپل اوميدونه كاميابيدل ښكاره شو نوهرقل سره حصارشو اود خپل قوم انصارو نه ئی هغه خلق مكې ته اوليګل كوم چه اهل نفاق وو چه لښكر راولم اوراځم. رسول اللهﷺ سره به پوره جنګ كوو په هغوی به غالب راځو اوهغوی به د خپل اسلام راوړلو نه په اولنی حالت كښې راتلل وی.اوددې اهل نفاق ته ئی حكم اوليګلو چه دده د پاره د پناه ځای جوړكړئی اوزما احكام او مراسلې چه څوك راوړی راځی د هغه د پاره د حصاريدو ځای اود امن ځای جوړساتنې دې نه پس چه كله هغه پخپله راشی نود هغه د پاره د مورچو د ځای كاروركړی. نودې منافقانومسجد قبا سره نيزدې يو بل جمات جوړكړو او هغه ئی ښه پوخ جوړكړو.اود رسول الله ﷺ د تبوك د وتلونه مخكې د دې كارنه فارغ هم شو او رسول اللهﷺ له ئی دا درخواست راوړلو چه تاسو زمونږ جمات ته راشئی او مونځ اوكړئی. د دې د پاره چه د دې خبرې سنداوكړې شی چه دا جمات په خپل ځای قابل استقرار او قابل اثبات شی.اود حضورﷺ په وړاندې دا بيان اوكړو چه دضعيفانو اوكمزورو د پاره دا جمات جوړكړې شو او چه په سخته يخنی كښې كوم بيماران خلق لرې جمات ته نه شی تلې د هغوی د پاره د آسانتی كيدو غرض دې. خو الله ﷻ خپل نبیﷺ په دې جمات كښې مونځ كولو نه بچ كول غوښتل. نو حضورﷺاوفرمائيل چه دې وخت كښې خو مونږ په سفركښې يو چه كله مونږ واپس شو او الله ﷻ غوښتل نوكتې به شی. او چه كله نبی كريم ﷺ د جنګ نه واپس شو اومدينې ته تلو خوچه مدينې ته فاصله د يوې ورځې او دې نه څه كم پاتې شوه نو حضرت جبرائيلؑ د مسجد ضرار د خبر راوړو سره راغلو اودمنافقانو دا راز ئی ښكاره كړو چه مسجد قبا سره يو بل جمات جوړولوسره د مسلمانانوپه ډله كښې جدا والې د كافرانو او منافقانو مقصد وو. هغه مسجد قبا دې چه د هغې بنيا درومبنی ورځ نه په تقوی باندې اوچت كړې وو. د دې علم كيدونه اول نبی كريمﷺ خپله مدينې ته د رسيدلو نه اول يوڅوكسان دې مسجد ضرار ته اوليګل چه راونړونی لكه څنګه چه علی بن ابی طلحه ؓ دې آيت په تفسير كښې دابن عباس ؓ نه روايت

کولوسره واني چه هغه د انصارو خلق وو چاچه یو جمات جوړکړې وو.ابو عامر هغوی ته اووئیل چه تاسو و جمات جوړ کړنې خومره چه هم ستاسو نه کیدې شی په دې کښې وسلې اود جنګ سامان بټ کیږدنې اودا دخپل حفاظت ځاي اوګرځوئ چه زه د روم بادشاه له خم د روم نه به لښکر راولم. اومحمد ﷺ اود هغه ملګری به د مدینې نه اوباسو. کله چه دې منافقانو مسجد ضرار جوړ کړو او فارغ شو نود نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اودرخواست ئې اوکړوچه زمونږ زړه خواهش دې چه یو ځل تاسو دې جمات کښې مونځ اوکړئې او په دې کښې زمونږ د پاره د برکت دعا اوکړې. نو الله ﷻ دا وحي راولیګله ﴿لَا تَقُمْ فِيهِ أَبَدًا ۚ لَّمَسْجِدٌ أُسِّسَ عَلَى التَّقْوَىٰ مِنْ أَوَّلِ يَوْمٍ أَحَقُّ أَن تَقُومَ فِيهِ ۚ فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ أَن يَتَطَهَّرُوا ۚ وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُطَّهِّرِينَ ۝ أَفَمَنْ أَسَّسَ بُنْيَانَهُ عَلَىٰ تَقْوَىٰ مِنَ اللَّهِ وَرِضْوَانٍ خَيْرٌ أَم مَّنْ أَسَّسَ بُنْيَانَهُ عَلَىٰ شَفَا جُرُفٍ هَارٍ فَانْهَارَ بِهِ فِي نَارِ جَهَنَّمَ ۗ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ ۝﴾[1] یعنی هیڅ کله په دې کښې مونځ مه اداکوه. یقینا د کوم جمات بنیاد چه د اولې ورځ نه په تقوی باندې ایخودې شوې دې ډیر حقدار دې د دې خبرې چه ته په کښې مونځ اداکړې. په دې کښې داسې پاك خلق دی چه هغوی دا غواړی چه زړونه ئې پاك وی او الله ﷻ هم داسې صفا اوپاکیزه زړونه خوښوی. سعید بن جبیر رضي الله عنه هم په سند سره روایت کړې دې او محمد بن اسحاق هم په سند روایت کړې دې چه نبی کریم ﷺ د غزوه تبوك نه واپس شو او مقام ذی اوان ته راورسیدو، مدینه د دې ځاي نه دیوځو ګنټو په فاصله ده نواوس دمسجد ضرار والاحضور ﷺ له راغله اوحضور ﷺ د تبوك طرف ته د تلوپه تیاری کښې لګیاوو. ونې وئیل یارسول الله ﷺ! مونږ د بیمارانو، حاجتمندو د باران او یخنئې په شپوکښې د مسلمانانو د راتلوډلود پاره یوجمات جوړکړې دې مونږ غواړوچه تاسو تشریف راوړنې اومونږ ته په دې کښې مونځ اداکړنې. حضور ﷺ اوفرمائیل چه دې وخت کښې خو مونږ سفر کوو اوډیر مصروف یو،یا نبی کریم ﷺ دا اوفرمائیل چه مونږ واپس راشونوان شاء الله مونږ به تاسوله راشو اوتاسوته به مونځ اوکړو.کله چه حضور ﷺ ذی اوان ته راورسیده نود دې مسجد ضرار خبر الله ﷻ حضور ﷺ ته ورکړو. حضور ﷺ دبنی شالم رور مالك بن دخشم راوغوښتو اومعن ابن عدی یا دهغه رور عامر بن عدی، دا دواړه راوغوښتل او ونې فرمائیل چه تاسو د دې ظالمانو جمات ته لاړشئ او هغه وران کړئ اووې سوزوئ.دادواړه زر لاړل اوبنی سالم بن عوف ته ورغله.دا د مالك بن الدخشم دقبیلې خلق وو اوس مالك معن ته اووئیل اودریږئ زه به خپلو خلقو کښې د چانه اُور راوړم. اوس مالك خپلوخلقو له راغلو اود ونې یو لونې لرګې واخستو او هغه ئې بل کړو او زرراووتلو. دا دواړه جمات ته اورسیدل.جمات کښې دا کافران ناست وو دې دواړوجمات اوسوزولواوراګذار ئې کړو. خلق د هغه ځاي نه اوتختیدل او د قرآن پاك دا آیت د منافقانو باره کښې نازل شو﴿ وَالَّذِينَ اتَّخَذُوا مَسْجِدًا ضِرَارًا وَكُفْرًا﴾ دا خلق کومو چه دا جمات جوړ کړې ووډولس کسان وو د خدام ابن خالد هم دده د کور نه دمسجد شقاق لار اوځی اودثعلبه بن حاطب بنی امیه خادم، معتب بن قشیر ابوحبیبه بن الازعر، عباد بن حنیف، حارثه بن عامر اود ده دواړه خامن مجمع، زید او نبتل الحارث، مخرج، بجاد بن عمران، ودیعه بن ثابت اود ابولبابه د قبیلې خادم،هغه خلق چا چه دا جوړکړې وو هغوی قسمونه خوړل اووئیلې چه مونږ خو په نیکه اراده د دې بنیاد ایخودې وو. زمونږ په وړاندې خو صرف د خلقو خیرخواهي وه. خو الله ﷻ فرمائی ﴿وَاللَّهُ يَشْهَدُ إِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ ۝﴾ الله ﷻ ګواهي ورکوی چه داخلق دروغ واني یعنی چه هغوی کومه اراده کړې اونیت ئې ساتلې په دې کښې درغژن دی. صرف په دې غرض ئې جمات جوړکړې چه مسجد قباته ضرراونقصان اورسوی. دکفر خورونه اوکړی ،مسلمانانو کښې تفرقه واچوی، الله ﷻ سره اود هغه رسول ﷺ سره دجنګ کولو د پاره مورچه جوړه کړی چرته چه د

---

[1] الطبری: ۱۴/۴۷۰.

هغوی مشورې اوکونسل کيږي. ابوعامر هغه فاسق سړی دی کوم چه راهب گڼلې شي الله ﷻ هغه باندې لعنت اوکړي.

**په مسجد ضرارکښې مونځ نه دی کول پکار::** اودالله ﷻ قول دی ﴿لَا تَقُمْ فِيهِ أَبَدًا﴾ نبی کريم ﷺ ئې کښې د مونځ کولونه منع کړو. په مونځ نه کولو کښې د هغوی تابع د هغوی امت هم دی. مسلمانانو ته هم دا تاکيد دی چه په دې کښې مونځ مه کوئي.بيا ئې دوی په مسجد قبا کښې دمانځه دپاره راوبللو اود مسجد قبا بنياد دشروع نه په تقوی باندې ايخودې شوې دی.تقوی د الله ﷻ اطاعت اود رسول الله ﷺاطاعت ته وائي. دلته مسلمانان يوځای کيني اودينی مشورې کوی. اودا د اسلام اواهل اسلام پناه ځای دی. هم د دې د پاره الله ﷻ فرمائی ﴿ لَمَسْجِدٌ أُسِّسَ عَلَى التَّقْوَىٰ مِنْ أَوَّلِ يَوْمٍ أَحَقُّ أَنْ تَقُومَ فِيهِ﴾ اود عبارت سياق د مسجد قبا متعلق دی.

**په مسجد قباء د مونځ کولو فضيلت::** په دې وجه په صحيح حديث کښې دی نبی کريم ﷺ فرمائيلی دی په مسجد قباکښې دمونځ کولوثواب د يوې عمرې د ثواب برابر دی[1] په صحيح حديث کښې دی نبی اکرمﷺ به مسجدقبا ته سور هم راتلو او پياده هم[2] رسول الله ﷺ چه کله دا جوړکړونو د نولونه ورځې تشريف راوړل نی عمرو بن عوف سره وو اود قبلې طرف حضرت جبرائيل ﷺ مقرر کړې وو. فالله اعلم.

**دقباوالو فضيلت اودهغه وجه::** ابوداؤد رحمه الله په سند دابوهريره رضی الله عنه روايت کړې دی چه نبی کريمﷺ فرمائيلی دا آيت د اهل مسجد قبا باره کښې نازل شوې دی. ﴿ فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ أَنْ يَتَطَهَّرُوا﴾ هغوی فرمائی چه هغوی به په اوبوسره طهارت کولو. نود هغوی په تعريف کښې دا آيت نازل شو[3] د ابن عباس رضی الله عنه نه روايت دی چه کله دا آيت نازل شو نو هغوی عويم بن ساعده رضی الله عنه له اورسيدل او تپوس ئې اوکړو چه ستا هغه کوم طهارت دی چه الله ﷻ د هغې تعريف کړې دی. نو عرض ئې اوکړو يارسول اللهﷺ! زمونږ نه چه کله يو سړې يا زنانه د حاجت نه فارغ شي نو په اوبو باندې خپل خان بنه وينځو نو حضورﷺاوفرمائيل چه او هم دا خبره ده[4] امام احمد رحمه الله بيان کړې دی چه نبی ﷺمسجد قبا ته تشريف راوړو او وئې فرمائيل دمانځه د پاره ستاسودطهارت الله ﷻ په ډيرو خوالفاظوکښې تعريف کړې دی. نو هغه ستاسو کوم طهارت دی. هغوی اوئيل يارسول اللهﷺ! مونږ ته خودداې نه علاوه بل څه نه دی معلوم څکه چه يهوديان زمونږ گاونديان دی او هغوی د حاجت نه اوزگاريدو باندې خپل خان په اوبو باندې وينځی نو مونږ هم دغه طريقه اختيارکړې ده.[5]ابن خزيمه داحاديثو په خپل کتاب کښې ليکلی دی چه رسول اللهﷺ د عويم بن ساعده رضی الله عنه نه تپوس اوکړوستاسودکوم طهارت الله ﷻ تعريف کړې دی؟نو وئې وئيل چه مونږ دپاکئی دپاره د اوبو استعمال کوو.ابن جرير رحمه الله اوونيل چه آيت ﴿فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ أَنْ يَتَطَهَّرُوا ۚ وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُطَّهِّرِينَ﴾ کوم نازل شوې دې هغه دحاجت نه پس په اوبو د وينځونکو په شان کښې دی.امام احمد بن حنبل رحمه الله په سندسره روايت کوی چه نبی کريم ﷺ مسجد قبا ته راغلواو وئې وئيل چه الله ﷻ ستاسو د طهارت ډير بنه تعريف کړې دی هغه څه دی؟ نو وئې وئيل يارسول اللهﷺ! مونږ خو په آيت کښې په اوبوسره د طهارت احکام موندلی دی[6] په دې کښې يوراوی عبدالله بن سلام رضی الله عنه

---

[1]) ترمذی کتاب الصلاة باب ماجاء فی الصلاة فی مسجد قباء:۳۲٤وهوحسن: ابن ماجه:۱٤۱۱، حاکم:٤۸۷/۱،المعجم الکبير:۵۷۰.

[2]) صحيح بخاری کتاب فضل الصلاة فی مسجدمکة والمدينة باب مسجد قباء:۱۱۹۱، صحيح مسلم:۱۳۹۹

[3]) ابوداؤدکتاب الطهارة باب فی الاستنجاء بالماء:٤٤،وهوحسن، ترمذی:۳۱۰۰، ابن ماجه:۳۵۷.

[4]) معجم الکبير:۱۱۰٦۵، مجمع الزوائد:۲۱۲/۱.

[5]) احمد:٤۲۲/۳، المعجم الکبير:۳٤۸.

[6]) احمد:٦/٦ وسنده حسن شهربن حوشب حسن الحديث.

روچه د اهل تورات نه وو).

**ځینې روایتونو کښې مسجد تقوی نه مرادمسجد نبوی دې:**:په صحیح حدیث شریف کښې دی په مدینه کښې چه کوم مسجد نبوی ﷺ دې هم دغه جمات دې د کوم د پاره چه ونیلې شوی دی چه د دې بنیاد په تقوی سره اوچت کړې شوې دې. اودا صحیح خبره ده په دې آیت اویدې آیت کښې څه منافات نشته ځکه چه کله دقبا شروع داولې ورځې نه دتقوی په بنیاد ده نو په درجه اولی کښې مسجد نبوی ﷺ نه داخصوصیت حاصلیدل پکار دی. د دې د پاره امام احمد بن حنبل رحمه الله په خپل مسند کښې بیان کړې دې چه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی کوم جمات چه د تقوی اساس لری هغه زما دا جمات دې. (۱)

امام احمد رحمه الله بیاپه سند روایت کړې دې چه د حضور ﷺ په زمانه کښې دوو کسانو په دې باره کښې اختلاف اوکړو چه د دې خصوصیت والا جمات کوم یو دې؟نو یواوونیل چه هغه مسجد نبوی دې او بل ونیل هغه مسجد قبا دې. دواړه د حضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شواوتحقیق نې اوکړو نو حضور ﷺ اوفرمائیل چه دې نه زما دغه جمات مراد دې.(۲)امام احمد رحمه الله بیا په سند سره روایت کړې دې چه دوه کسان د دې خصوصیت والا جمات په باره کښې مختلف الرائې وو یو مسجد قبا او بل مسجد نبوی خودلو نو حضور ﷺ اوفرمائیل چه مسجد تقوی هم دا زما جمات دې.(۳)

بیا د دې نه پس ډیر احادیث هم د دې مضمون وارد دی. حمید الخراط المدنی د ابوسلمه نه تپوس اوکړو تا د خپل پلار نه د مسجد تقوی باره کښې څه اوریدلی؟ نو ونی ونیل چه زه د حضور ﷺ خواته راغلم او تپوس مې ترې اوکړویا نبی الله ﷺ! مسجد تقوی کوم یودې؟ نو حضور ﷺ یو موټی کانړی د زمکې نه اوچت کړل او هغه نې په زمکه باندې راوویشتل او ونی فرمائیل چه هم دغه جمات دې. دې وخت کښې حضور ﷺ د جمات په صحن کښې د یوې بی بی په کمره کښې تشریف فرما وو(۴) بیا هغه وانی چه دا مسلم (۵)په اسناد حمید الخراط روایت کړې دې. چه دخلف او سلف یوه ډله هم په دې خبره قائل دی چه هغه مسجد نبوی دې.دحضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه او عبدالله بن عمر رضی الله عنه نه هم دا روایت دې. اود ﴿لَمَسْجِدٌ أُسِّسَ﴾ والا آیت مبارك د دې خبرې دلیل دې چه په پخوانو جماتونو کښې د کومو چه اول بنیاد دالله ﷻ په عبادت باندې اوچت کړې شوې دې مونځ کول مستحب دی. اود دې استحباب هم دلیل دې چه دنیکانو ډلې او عباد عاملین سره مونځ اوکړې شی او اودس په مکمل توګه باندې اوکړې شی او په مانځه د خیرنو یا ګنده کپړو نه بالکل پاك وی.

**په ښه توګه اودس کول پکار دی:**:امام احمد رحمه الله په اسناد سره روایت کړې دې چه رسول الله ﷺ د سحر مونځ ورکړو اوپه هغې کښې سورة روم اولوستلو په تلاوت کښې هغوی ته څه شك شان شو کله چه هغوی ﷺ واپس شونوونې فرمائیل په قرآن پاك لوستلوکښې څه ګړبړکیږی ګورنې په تاسوکښې بعضې خلق داسې دی چه مونږ سره مونځ کوی خو اودس په ښه شان سره نه کوی. نو چه څوك مونږ سره مونځ کول غواړی هغه له پکار دی چه کامل اودس اوکړی او په اودس کښې هیڅ خرابې اونه کړی.(۶) د ذوالکلاع رضی الله عنه نه روایت دې چه هغه حضورپاك ﷺ سره مونځ کړې وو نودا هدایت نې فرمائیلې وو.دا ځیز په دې خبره دلالت کوی چه ښکلې پاکی دعبادت په قیام کښې آسانی پیدا کوی او د عبادت په

---

(۱) احمد:۱۱٦/٥،سنن الترمذی:۳۰۹۹، مجمع الزوائد:۱۰/٤.
(۲) احمد:۳۳۱/٥وسنده حسن. هیثمی د دې رجالوته ثقه ونیلی دی. اوګورنی مجمع الزوائد:۷/۲۳
(۳) ترمذی کتاب تفسیرالقرآن باب ومن سورة التوبة:۳۰۹۹وسنده صحیح، صحیح مسلم:۱۳۹۸، احمد: ۳/۸۹
(۴) احمد:۲٤/۳وسنده صحیح.
(۵) صحیح مسلم: کتاب الحج باب بیان المسجد الذی اسس علی التقوی..:۱۳۹۸.
(٦) صحیح مسلم کتاب الافتتاح باب اب القراءة فی الصبح بالروم: ۹٤۸وهوصحیح، احمد:۳/٤۷۲.

تکمیل او پوره کیدلو کښې امداد کونکی ثابتیږي.

**دمکمل پاکوالي سره سره دګناهونو نه هم پاکیدل پکار دي:** ابوالعالیه دالله ﷻ ارشاد ﴿وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُطَّهِّرِيْنَ﴾ باره کښې اووئیل په اوبو سره صفائی کول خو بې شکه ډیره ښه خبره ده خود چا د طهارت چه الله ﷻ تعریف کوی هغه د ګناهونونه خپل ځانونه پاکونکی خلق دی. اعمش رحمه الله وائی د دې طهارت نه مراد د ګناهونونه توبه اود شرك نه پاکوالي دې. په حدیث شریف کښې وارد دی چه رسول الله ﷺ اهل قبا نه اوفرمائیل الله ﷻ چه ستاسود طهارت کوم تعریف کړې دې هغه څنګه طهارت دې نو ونې وئیل چه مونږ په اوبوسره استنجاء کوو. حافظ ابوبکر بزاز رحمه الله په اسناد دابن عباس رضی الله عنه روایت کړې دې چه دا آیت داهل قباپه باره کښې نازل شوې. داصرف محمد بن عبدالعزیز رحمه الله اود هغه نه د هغه خوئ روایت کړې دې. ما دا تصریح دلته څکه اوکړه چه دا څیزخو په فقهاؤکښې مشهور دې خواکثر متاخرین محدثین دا معروف نه تسلیمه وی. والله اعلم.

أَفَمَنْ | أَسَّسَ | بُنْيَانَهُ | عَلَىٰ تَقْوَىٰ | مِنَ اللّٰهِ
آیانوهغه څوك | چی اینبی ئی وی | بنیاددودانئ خپلې | په تقوی باندې | دالله نه
آیا چا چه د خپل عمارت بنیاد دالله ﷻ په ویره اودهغه د رضامندئ په خاطر

وَرِضْوَانٍ | خَيْرٌ | أَمْ مَّنْ | أَسَّسَ | بُنْيَانَهُ | عَلَىٰ شَفَا
اوبه خاطر درضادالله | بهتردې | یاهغه څوك | چی اینبی ئی وی | بنیاددودانئ خپلې | په هغه غاړه باندې
ایخی دې | هغه بهتردې اوکه هغه څوک چی دخپل عمارت بنیاد ئې دیوزوړند غورزیدنکی کمر په سر

جُرُفٍ | هَارٍ | فَانْهَارَ | بِهِ | فِي نَارِ جَهَنَّمَ | وَاللّٰهُ
چی دړه وی | غورزیدونکی وی | پس اوغورزیږی | سره ددې جوړونکی | په وور ددوزخ کښې | اوالله
ایخودې وی | اوهغې عمارت دغه سرې خپل ځان سره د دوزخ په اور کښې اوغورزوی | اوالله ﷻ

لَا يَهْدِي | الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ۝ | لَا يَزَالُ | بُنْيَانُهُمُ | الَّذِي | بَنَوْا
نه ښائی لار | قوم | ظالم ته | همیشه به وی | ودانئ ددوئ | هغه | چی جوړه کړی ده دوئ
ظالمانو ته هدایت نه کوی | کوم عمارت چې دوئ جوړ کړې دې | دابه همیشه دپاره د دوئ

رِيْبَةً | فِي قُلُوْبِهِمْ | إِلَّآ | أَنْ تَقَطَّعَ | قُلُوْبُهُمْ | وَاللّٰهُ | عَلِيْمٌ | حَكِيْمٌ ۝
شك | په زړونو ددوئ کښې | مګر | چې ټوټې شی | زړونه ددوئ | اوالله | ښه پوهه دې | دحکمت والا دې
په زړونو کښې د شک سبب وی | البته دا که زړونه ئې ټکړې ټکړې شی | اوالله ښه پوهه د حکمت خاوند دې

**قوله تعالىٰ:: أَفَمَنْ أَسَّسَ**

**دمسجد تقوی تحسین اودمسجد ضرار انجام:-** الله ﷻ فرمائی چه هغه خلق چاچه د جمات بنیاد په تقوی او دالله ﷻ په رضاباندې کیخودې دې اوهغه خلق چا چه د مسجد ضرار او مسجد کفر جوړ کړې دې او په مؤمنانوکښې تفرقه واچوله اود الله ﷻ سره اود هغه د رسول ﷺ سره د جنګ کولود پاره دا د پناه ځائ اوګرځولو آیا دا دواړه برابر کیدې شی. دې خلقوخودمسجدضرار بنیاد دیوې کندې

خونیدونکي په غاړه کیخودو دوی به د دوزخ اور ته یوسي. اود حدودونه تجاوزکونکوته الله ﷻ هدایت نه ورکوی. یعنی دمفسدینوعمل اصلاح کونکی نه جوړوی.

**مسجدضرار سوزول پکار دی:**:جابر بن عبدالله رضی الله عنه وائی چه مسجدضرار ما لیدلي وو چه د رسول الله ﷺ په حکم ورته أوراولګولي شو نودهغي نه لوګي وتلو(1) ابن جریج رحمه الله وائی چه مونږ ته معلومه شوه چه بعضي خلقو یوځای کښې کنده اوکنستله نو د هغي نه لوګي اوچتیدونکي ښکاریده. قتاده رحمه الله هم داسې ویناکړې ده.

خلف بن یاسین کوفی رحمه الله وانی چه ما د منافقانو دا جمات لیدلي د کوم ذکر چه الله ﷻ په قرآن پاك کښې فرمانیلي دا مې اوکتل چه په هغې کښې سورې دي د کوم نه چه لوګي وتلو. او نن هغه ځای د کندګنی غورزولو ځای دي. ابن جریر رحمه الله دا روایت کړې دي. د الله ﷻ ارشاد دي ﴿ لَا يَزَالُ بُنْيَانُهُمُ الَّذِي بَنَوْا رِيبَةً ﴾یعنی د هغوی جوړکړې شوې دا عمارت خو به همیشه د هغوی په زړه کښې د شك او شبهې ذریعه وی اوددې خراب کارکولو وجه به دهغوی په زړونوکښې د نفاق تخم کری. لکه څنګه چه د سخی عبادت کونکو په زړه کښې دسخی محبت پریوتلې وو﴿إِلَّا أَنْ تَقَطَّعَ قُلُوبُهُمْ ﴾البته په دې صورت کښې د دې منافقانو بیخ وتل کیدې شی چه دا جمات ختم کړی اود هغوی زړونه ټکړې ټکړې کړی. الله ﷻ د خپلو بندګانو اعمالوپاندې ښه خبر دي او د خیراو شر بدله ورکولوکښې ډیرحکیم دي.

إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَى مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنْفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُمْ بِأَنَّ

بیشکه چې الله | اغستلی دی | دمومنانونه | نفسونه دهغوی | اومالونه دهغوی | په دې چې بیشکه

بیشکه الله ﷻ دمومنانو سرونه اومالونه دجنت په بدل کښې په بیعه اخستی دی |

لَهُمُ الْجَنَّةَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيَقْتُلُونَ وَيُقْتَلُونَ

ری به دهغوئ دپاره | جنت | جنګیږی دوئ | په لاره دالله کښې | نو قتلوی دوئ | اووژلي کیږی

.... زځوک چې دالله ﷻ په لار کښې جنګیږی | نور هم وژنی او دوی هم وژلی شي

وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا فِي التَّوْرَاةِ وَالْإِنْجِيلِ وَالْقُرْآنِ وَمَنْ

وعده ده | په ذمه دهغه | حقه | په تورات کښې | اوپه انجیل کښې | او په قران کښې | اوځوک دي

دا(جنت ورکول) دالله ﷻ په ذمه کلکه وعده ده | چې په تورات انجیل اوقران پاک کښې (لیکلې) ده

أَوْفَى بِعَهْدِهِ مِنَ اللَّهِ فَاسْتَبْشِرُوا بِبَيْعِكُمُ الَّذِي

زیات پوره کونکي | وعدې خپلې لره | دالله نه | نو خوشحاله شئ | په بیعه خپله سره | هغه بیعه

او ځوک دي چې دالله ﷻ نه زیاته خپله وعده پوره کولې شی انوتاسو په دې خپلې کړې سودا

بَايَعْتُمْ بِهِ وَذَلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ

چې معامله کړی ده تاسو | په هغې | اودا | هم دا | کامیابی ده | لویه |

باندې زیرې قبول کړئ | اوهم دا ډیره لویه کامیابی ده |

**قوله تعالی:**: إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَى مِنَ الْمُؤْمِنِينَ

بدله یاد الله ﷻ **فضل اوکرم**:- ددې آیت په ذریعه الله ﷻ خبر ورکوی چه هغه د خپلو مؤمنانو بندګانو

(1) الطبری: ۴۹۳/۱۴.

د خانونو اومالونو په بدله کښې کوم چه هغوی د الله ﷻ په لارکښې خرچ کړی دی د جنت معاوضه ورکوی.دا معاوضه معاوضه نه ده بلکه د الله ﷻ فضل کرم اواحسان دې څکه چه د بندګانو په قدرت کښې څه وو اوهغوی اوکړه اوس د خپلو مطیع بندیګانو د پاره الله ﷻ هم څه معاوضه ګرځوی نو هغه هم جنت ګرځوی. په دې وجه حسن بصری رحمه الله اوقتاده رحمه الله فرمانیلی دی چه کله الله ﷻ هغوی سره اخستل او خرڅول اوکړه نود هغوی د خدمت ئې یو ډیر لوئ قیمت ورکړو. شمرین عطیه رحمه الله وئیلی دی چه یوداسې مسلمان نشته د چا په غاړه کښې چه د الله ﷻ عهد او پیمان نه وی په کوم چه د هغه مرګ راغلی وی اود هغې پابندکیدو سره هغه ځان ورکړې وی. بیانی دا مذکوره آیت تلاوت کړو او هم ددې دپاره وئیلې کیږی چه څوك د الله ﷻ د لارې د جهاد په خاطر اودریدو نولکه چه هغه الله ﷻ سره سودا اوکړه او الله ﷻ هغه سره دا عقد قبول کړو اوهغه ئې پوره کړو.

د اتباع بدله هم جنت ده::محمد بن کعب القرظی رحمه الله وغیره وائی چه عبدالله بن رواحه ﷺ په لیلة العقبه کښې د بیعت په وخت کښې اووئیل یا رسول الله ﷺ! که ته د خپل ځان د پاره یا د الله ﷻ د پاره څه شرط غواړې په مونږ باندې منلې شی. نو حضور ﷺ اوفرمانیل چه د الله ﷻ متعلق خو زه په تاسو دا شرط ګرځوم چه د هغه رښتونی بندیګان جوړ شئ. د هغه عبادت کوئی اوڅوك د هغه شریك مه ګرځونی او دخپل ځان متعلق درباندې دا شرط لګوم چه د کومو خبرو نه تاسو خپل ځانونه او خپل مالونه بچ کونې. زما هم دغه شان خیرخواه جوړشئ. نوتپوس ئې اوکړو بیا به مونږ ته څه ملاویږی؟ نو حضرت محمدرسول الله ﷺ اوفرمائیل د دې عوض جنت دې نو تپوس کونکو اووئیل داخو ډیر د فائدې سودا ده. نه به مونږ وعده ماتو اونه به مونږ کړې شوې وعده ماتولې شو.نودا آیت نازل شو﴿إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَىٰ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ﴾ اوداللہ ﷻ ارشاد دې ﴿فَيَقْتُلُونَ وَيُقْتَلُونَ﴾ (١)یعنی هغوی د الله ﷻ په لارکښې جنګیږی نوقتل هم کوی او قتل کیږی هم. دواړه خبرې د برابر ثواب والا دی‌که غواړی نو قتل اوکړی غازی جوړ شی یا شهید شی. په هر صورت کښې جنت د هغوی د پاره واجب دې. د دې د پاره په بخاری او مسلم شریف کښې راغلی دی چه څوك د الله ﷻ په لار کښې اووتل اود دې وتلونه د هغه غرض سوا د دې نه بل څیز نه وی چه زما په لار کښې جهاد اوکړی یا زما د رسولانو تصدیق اوکړی تردې چه هغه له مرګ راشی نو الله ﷻ د دې خبرې ذمه وار دې چه هغه په جنت کښې داخل کړی اوکه مړ نه شی نو د الله ﷻ ذمه واری ده چه د کوم ځائ نه روان شوې دې هم هلته ئې اورسوی. او د مال غنیمت داجر سره ئې بامراد اورسوی(٢)دالله ﷻ ارشاد﴿وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا فِي التَّوْرَاةِ وَالْإِنجِيلِ وَالْقُرْآنِ﴾دخپلې وعدې د تائید په توګه دې. اودا ښائی چه هغه په خپل ذات باندې دا څیز فرض کړې دې. او په خپلو رسولانو باندې د دې خبرې وحی هم رالیګلې ده چه په موسی ﷺ باندې نازل شوی تورات کښې دی اود عیسی ﷺ په انجیل کښې هم دی.اوپه نبی پاك ﷺ باندې نازل شوی قرآن پاك کښې هم لیکلی دی.صلوات الله وسلامه علیهم اجمعین.د الله ﷻ قول دې﴿وَمَنْ أَوْفَىٰ بِعَهْدِهِ مِنَ اللَّهِ﴾اود الله ﷻ نه دخپلې وعدې پوره کونکې بل څوك کیدې شی څکه چه هغه کله هم د وعدې خلاف نه کوی. لکه چه یو بل ځائ کښې فرمانی ﴿وَمَنْ أَصْدَقُ مِنَ اللَّهِ حَدِيثًا﴾ او﴿وَمَنْ أَصْدَقُ مِنَ اللَّهِ قِيلًا﴾. او هم د دې د پاره ارشاد کیږی چه الله ﷻ سره تاسو کومه سودا کړې ده په دې باندې خوشحاله شئ اودا ډیره زبردست کامیابی ده. په دې شرط چه تاسو هم خپله وعده پوره کړې وی.

---

(١) الطبری: ١٤/٣٩٩.

(٢) صحیح بخاری کتاب فرض الخمس باب قول النبی ﷺ(احلت لکم الغنائم):٣١٢٣، صحیح مسلم:١٨٧٦.



| اَلتَّآئِبُوْنَ | الْعٰبِدُوْنَ | الْحٰمِدُوْنَ | السَّآئِحُوْنَ | الرّٰكِعُوْنَ |
|---|---|---|---|---|
| توبه ايستونكي دي | عبادت كونكي دي | شكر ايستونكي دي | گرځيدونكي دي | ركوع كونكي دي |

دغه كسان چې توبه ويستونكي، عبادت كونكي ثناء ويونكي | روژه ساتونكي | ركوع كونكي

| السّٰجِدُوْنَ | الْاٰمِرُوْنَ | بِالْمَعْرُوْفِ | وَالنَّاهُوْنَ | عَنِ الْمُنْكَرِ |
|---|---|---|---|---|
| سجدې كونكي دي | حكم كونكي دي | په نيكئ باندې | اومنع كونكي دي | دبدئ نه |

سجده كونكي | دنيكئ حكم كونكي | د بدې نه منع كونكي

| وَالْحٰفِظُوْنَ | لِحُدُوْدِ اللّٰهِ ؕ | وَبَشِّرِ | الْمُؤْمِنِيْنَ ۝ |
|---|---|---|---|
| اوحفاظت كونكي دي | حدونو دالله لره | اوزيرې وركړه | مومنانو لره |

اودالله ﷻ داحكامو خيال لرونكي دي | اوداسې مومنانو ته «دجنت» زيرې وركړه |

**قوله تعالى:: اَلتَّآئِبُوْنَ**

**دمومنانواوصاف حميده:-** دا آيت مبارك د هغه مؤمنانويه تعريف كښې دې چه الله ﷻ دهغوى خانونه د هغوى مالونه اودهغوى ښكلې صفتونه په بدله كښې اخستي دي. هغوى د ټولو گناهونو او فاحشاتونه منع اوسيږي اود خپل رب په عبادت باندې قائم دي. په خپلو افعالو او اقوالونې ډير ژور نظر ساتلې دې. په اقوالو كښې خاص څيز د الله ﷻ حمد دې. ځكه فرمائي ﴿الحامدون﴾اود افعالو اواعمالو په رخ سره غوره اعمال صيام يعنى روژې دي.صيام وائى دخوراك څښاك اوجماع نه منع كيدو ته. اودسياحت نه هم دغه روژه مراد ده. په دې وجه نې اوفرمائيل ﴿السائحون﴾لكه چه دالله ﷻ ارشاددې ﴿سائحات﴾ كښې د پيغمبرﷺ د ازواج مهطرات تعريف فرمائيلې شوې دې. اود دې ﴿سائحات﴾ نه مراد ﴿صائمات﴾ دې. دغه شان د ركوع اوسجدې نه مراد مونځ دې. نواووئيلې شو﴿الراكعون الساجدون﴾ اوعبادتونه كولوسره خپله فائده نه گورى بلكه د الله ﷻ نورو بنديگانو ته رشد اوهدايت كولوسره په امربالمعروف او نهى عن المنكرباندې عمل كونكي جوړښې نوروته فائده رسوى.او ښائى چه كوم يوكارسزاوار دې اود كوموكارونوپريخودل واجب دى. اوعلماً او عملاً دواړه قسمه د حلال او حرام باره كښې د الله ﷻ په حدونوكښې حفاظت په وړاندې وى. نوهغوى په خپله د حق عبادت اود مخلوق د خير خواهئ دواړه قسم عبادتوعلم اوچتونكي دى.ددې د پاره پروردگارفرمائيلى چه مؤمنانوته زيرې وركړه ځكه چه ايمان د دوارو څيزونو د يوځاي كولو نوم دې او پوره سعادت او نيك بختى هم دوى ته حاصله ده څوك چه په دې دواړو خبرو باندې صفت كړې شوى دى. دسائحون نه صيام يعنى روژه نيونكي مراد دى.

**په السَّآئِحُوْنَ كښې دمفسرينو په نزد جهاد او روژه دى::**سفيان ثورى رحمه الله بيان كوى چه د ﴿سائحون﴾ معنى ﴿صائمون﴾ ده. حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائى چه الله ﷻ په قرآن كريم كښې چرته هم د سياحت لفظ استعمال كړې دې هلته هم صيام مراد دې.ضحاك رحمه الله هم دا وائى.حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها فرمائى چه د دې امت سياحت د رمضان روژې ساتل دى. مجاهد، سعيد، عطاء، عبدالرحمن،ضحاك او سفيان بن عيينه رحمهم الله ټول هم دغه خيال لرى. چه د ﴿سائحون﴾ نه مراد روژه دار دې. حسن بصرى رحمه الله وائى چه د ﴿سائحون﴾ نه د رمضان روژه دارمراد دې. ابوعمروالعبدى رحمه الله هم دا وائى چه په يومرفوع حديث كښې هم دا روايت دې. دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه حضورﷺ فرمائيلى ﴿سائحون﴾ روژه دارو خلقو ته وائى. دا حديث موقوف ډير صحيح دې. عبيد بن عمير رحمه الله وائى چه په سوال كولو باندې

حضورﷺ اوفرمائیل چه ﴿صائمین﴾ ته وائی.دا حدیث شریف مرسل دې او جیدې اواصح الاقوال دې او دا هم ونیلې شوی دی چه د سیاحت نه جهاد مراد دې. ابوداوٗد په خپل کتاب سنن کښې د ابوامامه حدیث بیان کړې دې چه یا رسول اللهﷺ ماته د سیاحت اجازت راکړه نو حضورﷺ اوفرمائیل چه زما د امت سیاحت جهاد فی سبیل الله دې. دعماره بن غزیه نه روایت دې چه نبی اکرمﷺ له د سیاحت ذکر راغلونوحضورﷺ اوفرمائیل چه الله ﷻ زمونږ د پاره جهاد فی سبیل الله[1] اوبه اوچتوخایونوکښې ونیلو سره تګ ته سیاحت ونیلې دې.دعکرمه رحمه الله خیال دې چه د دې نه دعلم طالبان مراد دی. اوعبدالرحمن بن زیا رحمه الله ونیلی دی چه مهاجرین مراددی. دا دواړه خبرې د ابن ابی حاتم نه روایت دی.

**صرف سیل او تفریح په دې ایت مبارک کښې مراد دی::** دا خبره یاد ساتل پکار دی چه دلته دسیاحت نه مراد هغه مفهوم نه دې چه بعضې عابداو راهب قسم خلقو ګنړلې دې چه د دې نه خان له په اطراف عالم کښې سفر مراد دې اوهغه خلق مراد دی چه په غرونوخنګلونو اوغارونوکښې ګرخی راګرخی. اود آبادونه تختی دا خکه چه داسې کول مشروع نه دی. اوکه د فتنې زمانه وی او په دین کښې تزلزل واقع شی نودا حدیث په صحیح بخاری کښې د ابوسعید خدری رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول اللهﷺ فرمائیلی چه ډیرزرهغه زمانه راتلونکې ده چه ډیوکس بهترین مال به د هغه چیلئی وی چه هغه به دوی به غرونوکښې او بارانی علاقو کښې د خرن د پاره ګرځوی. او د فتنونه د بچ کیدو د پاره به نی خپل دین راخستې وی تختی به.[2] ﴿وَالْحٰفِظُوْنَ لِحُدُوْدِ اللّٰهِ﴾ نه دالله ﷻ په اطاعت باندې قائم اوسیدونکی خلق مراد دی. اود حسن بصری رحمه الله نه روایت دې چه د الله ﷻ فرائض پوره کونکی خلق او په احکام الهی باندې قائم اوسیدونکی خلق مراددی.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مَا كَانَ | لِلنَّبِيِّ | | | |
| نه ښائي | پیغمبر لره | | | |
| | پیغمبر | | | |
| وَالَّذِيْنَ | اٰمَنُوْٓا | اَنْ يَّسْتَغْفِرُوْا | لِلْمُشْرِكِيْنَ | وَلَوْ كَانُوْٓا |
| اوهغه کسانولره | چې ایمان ئې راوړې دې | چې دبخښانې دعاغواړی | دپاره دمشرکانو | اګرکه وی هغوئ |
| او مومنانو سره دا نه ښائی | | چې دمشرکانو دپاره ببښنه اوغواړی | ............... | اګر که |
| اُولِيْ قُرْبٰى | مِنْۢ بَعْدِ | مَا | تَبَيَّنَ | لَهُمْ اَنَّهُمْ |
| خاندان دخپلوئ | روستو | ددې خبرئ نه | چې ښکاره شوی وی | هغوئ ته | چې بیشکه دا مشرکان |
| نزدې خپلوان وی | ددې نه پس چې دا | | ورته ښکاره شوه | چې هغوی |
| اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ | وَمَا كَانَ | اسْتِغْفَارُ | اِبْرٰهِيْمَ | لِاَبِيْهِ اِلَّا |
| دوزخ والا دی | اونه وه | غوښتنه دبښنې | دابراهیمؑ | دپاره دپلارخپل | مګروه |
| دوزخیان دی | او (حضرت) ابراهیمؑ | چې د خپل پلار | دپاره استغفار کړې وو | |

[1] ابوداوٗد کتاب الجهاد باب فی النهی عن السیاحة: ٢٤٨٦ وسنده حسن.
[2] صحیح بخاری کتاب الایمان باب من الدین الفرار من الفتن: ١٩.

| لَهُ | تَبَيَّنَ | فَلَمَّا | اِيَّاهُ | وَّعَدَهَآ | عَنْ مَّوْعِدَةٍ |
|---|---|---|---|---|---|
| هغه ته | معلومه شوه | خوکله چي | دهغه سره | چي کړي وه هغهٔ هغه وعده | په سبب دهغه وعدې |
| نودهغې وعدې په وجه ئې کړې وو | چي دپلار سره ئې کړي وه | اخو بيا چي کله دا ورته ښکاره شوه | | | |

| حَلِيْمٌ | لَاَوَّاهٌ | اِبْرٰهِيْمَ | اِنَّ | مِنْهُ | تَبَرَّاَ | لِّلّٰهِ | عَدُوٌّ | اَنَّهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| صبرناك وو | دير په زړه نرم وو | ابراهيم | بيشكه | د هغه نه | نو ويزاره شو | دالله | دشمن دي | چي بيشکه هغه |
| چي هغه دالله ﷻ دښمن دي | نو ويزاره شو ترې | ابراهيم دير الله ترس او رحمدل وو | | | | | | |

**قوله تعالى:: مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا**

**د مشرکانودپاره د ښښنې د دعا ممانعت:-** په مسند احمد کښې دابن المسيب نه روايت دي چه کله ابو طالب دزنکدن په وخت کښې وو نو نبی کريم ﷺ تشريف راوړو، هغه سره ابوجهل اوعبدالله بن ابی اميه ناست وو. حضور ﷺ ابوطالب ته اوفرمائيل اې تره ته ﴿لااله الاالله﴾ اووايه زه به صرف د دې يوې جملې بهانه واخلم د الله ﷻ نه به ستا د ښښنې د پاره حجت پيش کړم. نوابوجهل اوعبدالله بن ابی اميه اووئيل اې ابوطالب! ولې ته به د ملت عبدالمطلب نه مخ اړوې؟ نو ابوطالب اووئيل چه زه به هم د عبدالمطلب په ملت باندې خپل خان ورکوم. نو نبی ﷺ اوفرمائيل چه زه به د هغه وخته پورې ستا دمغفرت دعا کوم ترکومې چه الله ﷻ ما منع نه کړي. نودا آيت نازل شو ﴿مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْ يَّسْتَغْفِرُوْا لِلْمُشْرِكِيْنَ وَلَوْ كَانُوْٓا اُولِيْ قُرْبٰى مِنْۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمْ اَنَّهُمْ اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ﴾ يعنی نبی او ايماندارانوته داهډولاتق نه دی چه د مشرکانود پاره استغفار اوکړي. الخ. اودا آيت هم د دې متعلق نازل شو ﴿اِنَّكَ لَا تَهْدِيْ مَنْ اَحْبَبْتَ﴾[1] يعنی کوم چه تاسو دوستان ساتئی هغوی ته هدايت نه شئی کولې الله ﷻ چه چاته غواړي هدايت به کوی.

د حضرت علی نه روايت دې چه ما يو سړې اوليده چه د خپل مشرك مورپلارد پاره دعا کوله نو ما هغه ته اووئيل چه د مشرکانود پاره ته استغفار کوې. نو هغه اووئيل چه ولې ابراهيم ﷺ د خپل مشرك پلار دپاره استغفار نه وو کړې؟ ما دا واقعه حضور ﷺ ته ذکر کړه. نودا پورتنې آيت نازل شو.[2]

﴿لايبه﴾ نه پس ﴿لمامات﴾ (دابراهيم ﷺ پلارمړشو) الفاظ ئی هم اووئيل. خو زه نه شم وئيلې چه دا الفاظ سفيان پخپله اووئيل يا اسرائيل يا پخپله په حديث شريف کښې دا الفاظ شامل وو. زه وايم چه ثابته ده چه دا الفاظ مجاهد رحمه الله وئيلی.

**رسول کريم ﷺ هم د خپل مورپلار دپاره استغفار نشئ کولې، ددې متعلق احاديث::** په مسند احمد کښې دی چه بريده روايت کړې دې چه مونږ نبی ﷺ سره په سفرکښې وو او يوځائ کښې راکوزشواو مونږ تقريباً زر سواره وو. حضور ﷺ دلته دوه رکعته اوکړل، بيازمونږ طرف ته متوجه شونومونږ اوکتل چه دحضور ﷺ دسترګومبارکونه اوښکې رواني وې. حضرت عمر بن خطاب حضور ﷺ له راغلو او ونی وئيل يارسول الله ﷺ! زما مورپلاردې په تاقربان شی تاسو ولې ژاړئ. حضور ﷺ اوفرمائيل ما الله ﷻ ته درخواست اوکړوچه ماله زمادمورد پاره د استغفارغوښتلو اجازت راکړه خو الله ﷻ اجازت رانه کړونودأور له ويرې زماپه مورباندې زړه دير خفه شواوزماسترګوله اوښکې راغلې. ماددې نه وړاندې تاسود دريو څيزونونه منع کړې وئ. د قبرونودزيارت نه خواوس د قبرونوزيارت کولې شئ صرف په

---

[1] صحيح بخاری کتاب التفسير سورة براءة باب قوله ﴿ماکان للنبی والذين امنوا ان يستغفروا للمشرکين...﴾:۴۶۷۵، صحيح مسلم :۲۴، احمد:۴۳۳/۵، المعجم الکبير:۸۲۰، السنن الکبری:۲۱۶۲، دلائل النبوة:۳۴۲/۲.

[2] ترمذی کتاب تفسير القرآن باب ومن سورة التوبة:۳۱۰۱، نسائی:۲۰۳۸، احمد:۹۹/۱،حاکم:۳۳۵/۲.

دې غرض چه قبرستان ته په تلو باندې تاسوته خپل مرګ رایاد شي اوتاسو دنیکو طرف ته مائل شئ.ماد قربانئ غوښه ددریوورځونه زیات ساتلونه منع کړې وئ اوس موخوښه ده چه خومره خورئ اوځومره ځان سره ایږدئ. او په لوښوباندې د څکلو نه زما ممانعت وو اوس مو خوښه ده چه په کوم لوښې کښې څکئ څکئ خونشې والا څيز مه څکئ(١) دحضرت بريده ؓ نه روايت دې کله چه نبی کريم ﷺ د مکې طرف ته راغلونو په لارکښې يو قبرسره کيناستو اوقبرته ئې خطاب اوفرمائيلو بيا به ژړاکښې اودريدو. نوموږ اوونيل يارسول الله ﷺ! موږ ستاسو مصروفيت اوليدو نو وئې فرمائيل ما د خپلې مور د قبرد زيارت اجازت د الله ﷻ نه غوښتې وونوماته اجازت ملاوشو بيا ما د مور د پاره د استغفار اجازت اوغوښتو نو ماته اجازت ملاونه شو حضور ﷺ په دغه ورځ دومره اوژړل چه دې نه وړاندې نه وو ژړلي.(٢)

د حضرت عبدالله بن مسعود ؓ نه روايت دې چه يوه ورځ حضور ﷺ قبرستان ته اووتلو موږ هم د هغوی ﷺ پسې شاته وو حضور ﷺ يو قبرسره کيناستو. بيا تر ډيره پورې په دعاکښې وو بيا هغوی ﷺ په ژړا شو. حضور ﷺ ته په کتوکښې موږ هم په ژړا شو. دې وخت کښې عمر بن خطاب ؓ حضور ﷺ له ورغلو. حضور ﷺ عمر ؓ او موږ راوغوښتو او وې فرمائيل چه تاسو ولې ژاړئ؟ موږ ونيل چه ستاسو ژړا موږ اوليده نو موږ له هم ژړا راغله. دا قبرچرته چه زه ناست ووم دا د آمنه بی بی قبر دې. ما د دې قبر د زيارت اجازت د الله ﷻ نه غوښتې وو نوماته اجازت راکړې شو(٣) داحديث شريف په دويم شان سره هم بيان کړې شوې دې. بيادحضرت ابن مسعود ؓ حديث هم داسې دې. خو په هغې کښې دا نورهم دی چه ما د آمنه بی بی د پاره د دعا اجازت غوښتې ووخو اجازت ملاونه شو اودا پورتنې آيت نازل شو يعنی ﴿مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِينَ آمَنُوا﴾ د خپل پلارد پاره چه څنګه د يواولاد زړه خفه کيدې شی زما هم زړه خفه شو. ما تاسو د قبرونودزيارت نه منع کړې وئ اوس زيارت کوئ دا څيز به درته آخرت يادوی. د ابن عباس ؓ نه روايت دې چه نبی کريم ﷺ د غزوه تبوک نه واپس شو اود عمرې نيت ئې اوتړلو اود عسفان دوغرونويه مينځ کښې ځائ نه راکوزشو نوخپلو صحابوته ئې اوفرمائيل چه تاسو خلق عقبه کښې په آرام سره کينئ زه واپس راځم. حضور ﷺ لاړو اودخپلې مورقبرسره کيناستو اود رب نه ئې ډير وخته پورې دعا اوغوښته. بيا په ژړا شو او ډير زيات ئې اوژړل. حضور ﷺ ته په کتو باندې نور خلق هم په ژړا شو او وئې ونيل حضور ﷺ دلته تاسو څه څيز اوژړولئ. آيا په امت کښې څه داسې نوې خبره خو نه ده پيدا شوې کومه چه تاسو برداشت کولې نه شوه. حضور ﷺ چه دا اوکتل نود هغوی طرف ته راغلو اووئې فرمائيل چه تاسو ولې ژاړئ؟ ونيل يارسول الله ﷺ! تاسو په ژړا وئې نو موږ هم په ژړا شو. موږ خيال اوکړو چه په امت کښې خو څه نوې خبره نه ده پيدا شوې کومه چه تاسو برداشت نه کړې شوه. وئې فرمائيل چه نه يوه معمولې غوندې خبره وه. واقعه داسې وه چه زه د مور قبر سره حصار ووم اود قيامت په ورځ مې د هغوی د شفاعت بښنه غوښتې وه نو الله ﷻ د اجازت راکولو نه انکار اوکړو. نو ماله ډيره ژړا راغله خکه چه هغه زما مور وه. بيا جبرائيل ؑ نازل شو او وئې ونيل چه د حضرت ابراهيم ؑ د خپل پلار د پاره بښنه غوښتل صرف په دې اعتبار سره وو چه پلار سره هغه وعده کړې وه چه دعا به کوم خوچه کله د الله ﷻ په حکم سره معلومه شوه چه هغه د الله ﷻ دښمن دې نوهغه لاس راښکلو.نو اې نبی ﷺ! ته هم د خپلې مور نه دحضرت ابراهيم ؑ په شان لاس راکاږه. نو هغه زما مور وه زما زړه به څنګه نه خفه کيدو. ما د الله ﷻ نه دعا کړې وه چه زما دامت نه د څلورو څيزونوبوج

---

١) احمد: ٣٥٥/٥، صحيح مسلم كتاب الجنائز باب استئذان النبی ﷺ ربه فی زيارة قبر امه: ٩٧٧، ابن حبان: ٥٣٩٠.
٢) الطبری: ٤٧٩/٦.
٣) حاكم: ٣٣٦/٢.

اوچت کړه نو الله ﷻ دوه عذابونه اوچت کړل او دوه ئې باقي پاتې کړل. ما دعا کړې وه چه د اسمان نه زما په امت کاڼړي مه راوروه لکه چه په نورو امتونویاندې شوي دي. اود عذاب په توګه هغوی په زمکه کښې مه ورخښوې اوهغوی مه اولته کوه او دا چه په هغوی کښې بې اتفاقي ډله بازي او فرقه واریت نه وي اود هغوی په خپل مینځ کښې جنګ نه وي.نو الله ﷻ د آسمان نه کاڼړي ورول او په زمکه کښې غرقیدلو دعا قبوله کړه. اود جنګ او بې اتفاقئ دعا ئې قبوله نه کړه. هغوی په لارکښې د مور قبرله تلي ووخکه چه آمنه بی بی د غوندئي لاندې خښه وه.دا حدیث غریب دې اود دې سیاق عجیبه دې اود دې نه هم ډیره عجیبه اود انکارقابله خبره خو هغه روایت دې کوم چه خطیب بغدادي خپل کتاب "السابق واللاحق" کښې په مجهول سندسره بیان کړې دې.اوحضرت عائشه رضي الله عنها سره ئې اسناد ترلي دی دا قصه ئې داسې بیان کړې ده چه الله ﷻ د حضرت محمد ﷺ مور آمنه بی بی راژوندئي کړې وه اوژوندئي کیدوسره هغې ایمان راوړې وواو بیا مړه شوه[1] سهیلي هم په "الروض" کښې د مجهولینو د یوې ډلې نه سند اخستوسره ونیلي دي چه الله ﷻ د حضور ﷺ مور اوپلار ژوندي کړي وو اوهغوی ایمان راوړي وو.حافظ ابن دحیه وائي چه دا حدیث دروغ دې. قرآن پاك او اجماع دواړه دا ردکوي. الله ﷻ پخپله په قرآن پاك کښې فرمائي ﴿ وَلَا الَّذِينَ يَمُوتُونَ وَهُمْ كُفَّارٌ ﴾ هغه خلق به نه شي بښلې چه د کفر په حالت کښې مړه شوي دي.

**په دې باره کښې د علامه قرطبي رائې:**:ابوعبدالله قرطبي وائي چه د دې حدیث شریف په مقتضی باندې غور اوکړه اوابوعبدالله ډیره لویه توره کړې ده اودا استدلال ئې پیش کړې دې چه دا حیات جدید بالکل داسې کیدې شي لکه دمازیګروخت په تیریدوباندې دحضور ﷺ په معجزه باندې بیا نمر د ډوبیدونه پس راووتلو اوحضور ﷺ د مازیګرمونځ ادا کړو. ددې استدلال په ذریعه ئې دابن دحیه تردید کړې دې.طحاوي رحمه الله وائي چه دنمر والا حدیث ثابت دې. قرطبي رحمه الله وائي چه د حضرت ﷺ د مور پلار ژوندي کیدل نه عقلاًممتنع دي او نه شرعاً اوما خواوریدلي دي چه الله ﷻ د حضور ﷺ تره ابو طالب هم ژوندې کړې وو اوهغه ایمان راوړې وو. زه خو وایم چه دا ټول د حدیث په صحت باندې موقوف دی که حدیث صحیح دې نو هیڅ مانع نه دی اوچه حدیث صحیح نه وی نو هیڅ جګړه نشته. والله اعلم.

عوفي د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روایت کړې دې چه نبی کریم ﷺ دخپلې مور د پاره د استغفار کولو اراده کړې وه نو الله ﷻ منع کړو. حضور ﷺ اوفرمائیل چه ابراهیم خلیل الله علیه السلام د خپل پلار د پاره استغفارکړې وو ود ﴿ وَمَا كَانَ اسْتِغْفَارُ ﴾ والا آیت نازل شو.

**په دې ایت مبارک کښې مړو مور پلارته د استغفار ممانعت دې نه ژوندو ته:**:د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه د دې آیت باره کښې روایت دې چه خلقو دخپلو مړو د پاره استغفارکولو نود ابراهیم علیه السلام د استغفار والا آیت نازل شوې وو. نو خلق د دې ناجائز استغفار نه منع شوخو مسلمانان د خپلو ژوندو مشرکانود پاره د مغفرت کولو نه نه وو منع شوي.

قتاده رحمه الله ددې آیت باره کښې ونیلي دی چه د نبی کریم ﷺ بعضو صحابواوونیل یا رسول الله ﷺ! زمونږ نبانیکونه ډیر نیکان خلق وو. ګاونډیانوسره به ئې ډیربنه سلوك کولو،دصله رحمئ عادت وو.قیدیان راخلاصول او خلقو ته تاوان اداکولو د پاره به ئې پیسې ورکولې.آیا مونږ د دې مړودپاره استغفار اونه کړو؟ حضور ﷺ اوفرمائیل ولې نه، د الله ﷻ قسم زه به هم د حضرت ابراهیم علیه السلام په شان د خپل پلار د پاره استغفار کوم. نو زردا آیت نازل شو چه نبی اومسلمانانو له د مشرکانود پاره دعا کول جائز نه

[1] الموضوعات:۲۸۳/۱ امام ذهبي وائي دا روایت دروغ دې(لسان المیزان:۹۱/٤).

دی. بیاالله ﷻ دحضرت ابراهیمؑ دطرف نه صفائی پیش کوی چه دابراهیمؑ استغفارخوصرف د وعدې په وجه وو.بیاحضورﷺ اوفرمائیل چه الله ﷻ په ماباندې یوځو کلمې القاء کړې کومې چه زما په غوږونو کښې تاویږی اوزما په زړه کښې په قرار دی. ماته حکم شوې دې چه د شرک په حالت کښې د مړه کیدونکود پاره مغفرت مه غواړه. او چا چه د خپل ضرورت نه زیاتی مال صدقه کړو هغه د هغه د پاره ډیر د خیر سبب دې او چا چه منع کړو هغه د ده د پاره د شر سبب دې. د ضرورت مطابق خوراك څښاك اوخرچ کولو باندې د الله ﷻ هیڅ اعتراض نشته. د ابن عباس ﷺ نه روایت دې چه یو یهودی مړشود هغه خوئ مسلمان وو اود هغه د کفن دفن د پاره هم رانغلو. ابن عباسؓ ته معلومه شوه نو وئی فرمائیل چه بچی له خو پکاروو چه پلار له تلې وو اوکفن دفن ئی کړې وو او ترژوندی اوسیدو پورې د هغه د پاره د خیر او خلاصی دعا کوله او په مرګ ئی هغه ته حواله کړې وو اود هغه د پاره به ئی دعا نه کوله. د دې د صحت ګواهی د دې روایت نه ملاویږی کوم چه د حضرت علیؓ نه روایت دې. کله چه ابوطالب مړ شونوما رسول اللهﷺ ته اووئیل یارسول اللهﷺاستا ګمراه تره مړ شو نو وئی فرمائیل چه لاړشه اوهغه خښ کړه اونور څه مه کوه ماله واپس راشه([1]) بیا ئی پوره حدیث بیان کړو او روایت ئی اوکړو چه د نبی کریمﷺ د وړاندې کله د ابوطالب جنازه تیره شوه نو وئی فرمائیل چه تره ما خود صله رحمئی حق اداکړو([2])

**دشرك نه علاوه بله ګناه د دعاء نه مانعد نه دی:** او عطاء بن ابی رباح وائی چه زه خو به د یواهل قبله د جنازې دمونځ کولو نه منع نه شم. که هغه د ناجائز عمل والا یو حبشن ولې نه وی. ځکه چه د جنازې مونځ دعا ده اود مشرکانو نه علاوه الله ﷻ د بل چاد دعا نه منع نه ده کړې. د ابن جریر رحمه الله نه روایت دې چه ابوهریرهؓ به وئیل چه الله ﷻ دې په هغه سړی باندې رحم اوکړی چه د ابوهریره ؓ اود هغه د مورد پاره د مغفرت دعااوکړی. ماوئیل اود پلار د پاره، نو ابوهریرهؓ اوفرمائیل چه نه زما پلار مشرك مړشوې وو.اود الله ﷻ د ارشاد ﴿ فَلَمَّا تَبَيَّنَ﴾ باره کښې ابن عباسؓ وائی چه ابراهیمؑ د پلار د مرګه پورې د بښنې دعا کوله اود مرګ نه پس چه کله معلومه شوه چه هغه د الله ﷻ دښمن وونو لاس ئی ترې منع کړو.

د سعیدبن جبیرؓ نه روایت دې چه دقیامت په ورځ حضرت ابراهیمؑ خپل پلار سره ملاوشی نود هغه نه به جدا وی. پلار به ئی بدحواس اوخفه وی او په مخ به ئې ګردوغبار اوذلت وی اووائی به چه اې ابْراهیم! ما ستا نه وو اوریدلی خو نن به ستا خلاف نه کوم. نو ابراهیمؑ به وائی ای ربه! تاماسره وعده نه وه کړې چه د قیامت په ورځ به تا رسوا کوم نه نود نن ورځې د دې رسوائې نه بله څه رسوائی کیدئې شی. نو وئیلې به شی چه ته خو شاته اوګوره. څه ګوری چه هغه نیم ځانې غوندې ځناور ټکره پرتلوی اودیوکتمل په شکل کښې مسخ شوې دې د چا پښې چه رانیکلې شی او دوزخ ته وړې شی.([3])

د **﴿أَوَّاهٌ﴾ په تفسیر کښې مختلف اقوال:** د الله ﷻ ارشاد دې ﴿ إِنَّ إِبْرَاهِيمَ لَأَوَّاهٌ حَلِيمٌ ﴾ابن مسعودؓ وائی ﴿أَوَّاهٌ ﴾ معنی ده ډیر دعا اوزاری کونکې. د ابن لهاد نه روایت دې نبی کریم ﷺ ناست وو یوسړی تپوس اوکړویارسول اللهﷺ! د ﴿أَوَّاهٌ﴾ څه معنی ده؟ وئی فرمائیل ډیره زاری کونکې. ابن مسعودؓ د دې معنی رحیم خودلې. قتاده رحمه الله وغیره رحیم بعباد الله وئیلې دې. او ابن عباسؓ د دې معنی مؤمن بنائی او ابوطلحه مؤمن تواب وائی.عقبه بن عامرؓ نه روایت دې چه ذوالنجادین نومې سړی باره کښې

---

[1] ابوداؤد ثاب الجنائز باب الرجل يموت له قرابة مشرك: ٣٢١٤، وهوحسن، نسائی ٢٠٠٨.

[2] الطبقات: ٩٩/١.

[3] صحيح بخاری کتاب احادیث الانبیاء باب قوله تعالی ﴿واتخذالله ابراهیم خلیلا﴾: ٣٣٥٠مرفوعًا.

حضور ﷺ اوفرمائيل چه ﴿أَوَّاهٌ﴾ دی. چرته به چه هم په قرآن پاك كښې د الله ﷻ نوم راتلو نودې سړې به د دعا يوه چغه پورته كوله[۱] د ابوالدرداء ﷺ نه روايت دې چه د سحر څوك د تسبيح پابندي كوى هغه نه ﴿أَوَّاهٌ﴾ وائي. ابوايوب ﷺ وائي څوك چه خپلې خطاګانې يادوى اواستغفار كوى. مسلم بن بيان ﷫ وائي چه يوسړې به په كثرت سره ذكراوتسبيح كوله نونبي كريم ﷺ هغه ته ﴿أَوَّاهٌ﴾ اوفرمائيل.ابن عباس ﷺ نه روايت دې چه حضور ﷺ يوسړې خښولونه پس اوفرمائيل الله ﷻ دې په تارحم اوكړى ته يوسړې ﴿أَوَّاهٌ﴾ وې. دحضرت محمد ﷺ مراد وو چه ډيرتلاوت كونكې د قرآن پاك وو. يوسړې به د بيت الله شريف د طواف په وخت كښې آه آه كول.دحضور ﷺ په وړاندې دهغه ذكراوشو نو وئې فرمائيل چه دغه خو ﴿أَوَّاهٌ﴾ دې. حضرت ابوذر ﷺ وائي يوه شپه زه راوتلې ووم چه اومې كتل نو نبي كريم ﷺ هم دغه سړې د ډيوې په رڼرا دفن كوى. دا حديث غريب دې اودا ابن جرير ﷫ روايت كړې دې. دټولو نه ښه قول دا دې چه د دې معنى ددعا ده.اودا دسياق مناسب هم دى. يعنى الله ﷻ چه ذكر اوكړو چه د ابراهيم ﷺ استغفار خو دوعدې په وجه وو اوابراهيم ﷺ به ډيره دعاكوله.ناروا كاركونكوسره هم حليم وو اوودې د وجې نه خود پلار د تكليف رسولو سره به ئې د هغه د پاره استغفار كول لكه چه الله ﷻ فرمائى ﴿أَرَاغِبٌ أَنتَ عَنْ آلِهَتِي يَا إِبْرَاهِيمُ لَئِن لَّمْ تَنتَهِ لَأَرْجُمَنَّكَ وَاهْجُرْنِي مَلِيًّا ۝ قَالَ سَلَامٌ عَلَيْكَ سَأَسْتَغْفِرُ لَكَ رَبِّي إِنَّهُ كَانَ بِي حَفِيًّا﴾ يعنى اې ابراهيم ﷺ ته زما د الهو نه اعراض كوې. ګوره كه ته منع نه شوې نو زه به تاپه كاڼړو اولم مانه منع شه. نو ابراهيم ﷺ اووئيل سلام عليك لاړم خوستا د پاره به د خپل الله ﷻ نه خامخا دعا كوم هغه په مابانديې ډير مهربان دې. غرض دا دپلار په تكليف رسولوسره هم حضرت ابراهيم ﷺ نرمي اختيار كړه.دپلار دپاره ئې دعااواستغفار اوكړو نو الله ﷻ ورته دحليم خطاب وركړو.

| وَمَا كَانَ اللَّهُ | لِيُضِلَّ | قَوْمًا | بَعْدَ | إِذْ |
|---|---|---|---|---|
| اونۀ دې الله | چې بې لارې كړى | يو قوم | روستو | دهغه وخت نه |
| او الله ﷻ دا كار نه كوى | چې يوقوم د هدايت موندلو نه پس | | | |

| هَدَاهُمْ | حَتَّىٰ | يُبَيِّنَ | لَهُم | مَّا | يَتَّقُونَ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې لارې ئې اوښودله هغوئ ته | ترهغې پورې | چې بيان كړى | هغوئ ته | هغه څه | چې ترې ځان اوساتى هغوئ |
| بې لارې كړى | ترڅو چې ورته صفا اوښائى | چې دكومو كومو خيزونو نه ورله بچ كيدل پكار دى | | | |

| إِنَّ اللَّهَ | بِكُلِّ شَيْءٍ | عَلِيمٌ | إِنَّ اللَّهَ | لَهُ | مُلْكُ السَّمَاوَاتِ |
|---|---|---|---|---|---|
| بيشكه الله | په هرڅيزباندې | خبرداردې | بيشكه چې الله | هم خاص دۀ لره ده | بادشاهي داسمانونو |
| بيشكه الله ﷻ په هر څه باندې پوهه دې | بيشكه داسمانونو او زمكې بادشاهي صرف د | | | | |

| وَالْأَرْضِ | يُحْيِي | وَيُمِيتُ | وَمَا | لَكُم | مِّن دُونِ اللَّهِ | مِن وَلِيٍّ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اودزمكې | ژوندى كول كوى | اومړه كول كوى | اونشته | تاسو لره | بې د الله نه | څوك دوست |
| الله ﷻ ده | هغه ژوندى كول كوى او مړه كول كوى | او دالله ﷻ نه سوا ستاسو بل هيڅوك دوست | | | | |

| وَلَا نَصِيرٍ |
|---|
| اونۀ مددګار |
| يا مددګار نشته |

(۱) احمد: ۱۵۹/۴.

**قوله تعالى: وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِلَّ قَوْمًا**

الله ﷻ داتمام حجت نه بغیرعذاب نه ورکوي.- الله ﷻ دخپل نفس کریمه اوحکمت عادله متعلق ارشاد
فرماني چه ترکومې الله ﷻ یو قوم ته خپل پیغمبر لیکلو سره حجت تمام نه کړي نوهغوي د ګمراهۍ د
پاره نه پریږدي. لکه چه بل خایٔ کښې فرمانیلي دي اهل ثمود ته مونږ هدایت ورکړو. مجاهد رحمه الله د الله
ﷻ قول ﴿وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِلَّ قَوْمًا بَعْدَ إِذْ هَدٰهُمْ﴾ باره کښې وئیلي دي چه دالله ﷻ عزوجل بیان دمومنانو د
مشرکانو دپاره استغفارپریخودلوپاره کښې خاص دې اوداسې دمومنانودپاره دالله ﷻ اطاعت او
معصیت کارعام دې یعني ته پخپله مرضۍ باندې اختیارمند نې.که پخپله مرضۍ دې طاعت اختیار
کړوکه معصیت اختیارول پریخودل غواړې نو پریږده خو د استغفارد پریخودو بیان عمومي نه دې بلکه
خصوصي دې. ابن جریر رحمه الله وائي چه الله ﷻ فرماني که تاسود خپلو مړو مشرکانود پاره استغفار
کونې نو آیاداضروي دي چه تاسوبه الله ﷻ ګمراه ګرځوي اوهغه تاسو ته د خپل ذاتي حده پورې د
هدایت توفیق درکړي دې.او په الله ﷻ او د هغه په رسول ﷺ باندې د ایمان راوړو عزت نې دربښلي دې
تر دې چه تاسو نې د منهیات نه منع کړنې اوتاسو د هغې نه منع شونې. خو وړاندې ددې نه چه هغه د
دې منهیاتوکراهت او ممانعت بیان کړي اوتاسو د دې منهیاتوطرف ته تیت شنې نو هغه به ولې به
تاسو د ضلال اوګمراهۍ حکم لګوی دا خکه چه طاعت او معصیت خو امر اونهي سره تعلق لري خو
چه چاایمان نه وي راوړې او نه هغه منع شوې وي نوهغه ته دحکم پوره کولو متعلق مطیع او ممنوع
کولو سره ګناهګار هډو وئیلي نه شي.د الله ﷻ دا قول چه هغه مالك الملك دې ژوندي کول هم کوي او
مړه کول هم.داد الله ﷻ د طرف نه د خپلو مومنانو بندیګانود پاره دمشرکانو اوکافرانوسره د جنګ
کولو تحریض دې اودوی له هم د هغه الله ﷻ د امداد یقین ساتل پکار دی اود الله ﷻ د دښمنانونه نه
دي ویریدل پکار. خکه چه هغوی الله ﷻ پریخود نود هغوی نه خوك ولی شته اونه امدادی.
حکیم بن حزام رضي الله عنه نه روایت دې چه مونږ رسول الله ﷺ سره ناست وو نوونې فرمانیل چه تاسو هغه اورنې
کوم چه زه اورم نو خلقو ونیل چه مونږ خو هیڅ نه اورو. حضورﷺ اوفرمانیل چه زه د آسمان چرچر اورم
اود بوج نه به ولې هغه نه درنیږي او چرچر به ولې نه کوي خکه چه په آسمان کښې یو لویشت خایٔ
داسې نشته چرته چه یوه فرښته په سجده یا قیام کښې موجود نه وي[1] کعب الاحبار رحمه الله وائي چه د
ستنې دڅوکې هومره خایٔ په زمکه کښې داسې نشته کوم خایٔ کښې چه یوه فرښته د الله ﷻ په هغه
باندې مقرر شوي ده. اود آسمان فرښتې د زمکې د ذرونه په شمیرکښې زیاتې دي اود عرش د
حاملینو فرښتو د ګیتونه واخله ترپندو پورې فاصله د سلوکالود مسافت ده.

| وَالْأَنْصَارِ | وَالْمُهٰجِرِيْنَ | عَلَى النَّبِيِّ | اللّٰهُ | لَقَدْ تَّابَ |
|---|---|---|---|---|
| اوپه انصاروباندې | اوبه مهاجرینو باندې | په نبي باندې | الله | په تحقیق سره مهرباني اوکړه |
| | | الله ﷻ د خپل پیغمبر او د هغې مهاجرو اوانصارو | | |
| مَا | مِنْ بَعْدِ | فِيْ سَاعَةِ الْعُسْرَةِ | اتَّبَعُوْهُ | الَّذِيْنَ |
| دهغې نه | روستو | په وخت دتنګۍ (سختۍ) کښې | چې پیروي نې کړې وه دهغه | دا هغه کسان دي |
| اګر چې د | سره ملګرتیااوکړه | چې سختې تنګدستۍ کښې نې د پیغمبر | | په حال توجه اوکړه |

[1] ابن ابي حاتم.

| كَادَ يَزِيغُ | قُلُوبُ | فَرِيقٍ | مِّنْهُمْ | ثُمَّ | تَابَ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې نژدې شوې وو چې كاږه شي | زړونه | د يوې ډلې | د هغوئ نه | بيا ئې | رجوع په رحمت سره اوكړه |
| خينو زړونه كږيدو والا وو | ..............خو بيا الله ﷻ د دوئ توبه قبوله كړه | | | | |

| عَلَيْهِمْ | إِنَّهُ | بِهِمْ | رَءُوفٌ | رَّحِيمٌ |
|---|---|---|---|---|
| په هغوئ | بيشكه هغه | په دوئ | مهربانه دې | رحم كونكې دې |
| هغه په دوئ باندې شفيق او مهربان دې | | | | |

قوله تعالى: فِي سَاعَةِ الْعُسْرَةِ

جنګ تبوک يو ډير ګران سفر:- مجاهد رحمه الله وغيره بيان كړې دې چه دا آيت د غزوه تبوک متعلق دې.
يعنې خلق چه كله د غزوه تبوک د پاره اووتل نو ډيره سخته ګرمی وه. د قحط كال او د لارې د خرچې
سخته تنګی وه(۱) قتاده رحمه الله وائي چه د جنګ تبوک د پاره كله روان شونو ډيره سخته ګرمی وه. الله ﷻ ته
معلومه ده چه څنګه سخت مصيبتونه مجاهدينو ته اورسيدل. تردې پورې ونيلې شي چه يوه كهجوره
به دوه ځائ كولې شوه او په دووسړو كښې به تقسيم كولې شوه. كهجورې به لاس په لاس وړاندې كولې
شوې يو به لږه اوروله بيا به ئې اوبه اوڅكلې نو بل به اوروله اواوبو څكلو سره به ئې تسلی حاصلوله.
بيا الله ﷻ د هغوی دعا قبوله كړه د غزوې نه واپس شو. د عبدالله بن عباس رضي الله عنه نه روايت دې چه دعمر
بن الخطاب رضي الله عنه نه دتنګدستئ باره كښې تپوس اوش نو وئې فرمائيل چه مونږ د نبی كريم ﷺ سره جنګ
تبوک له اووتلو سخته ګرمی وه. مونږ يو ځائ حصار شونو هلته په مونږ باندې داسې تنده راغله چه
زمونږ دا ګمان اوشو چه بس اوس به مو سا اوخيژی. كه يو سړې به د اوبو په لټون كښې وتلو نو دا يقين
به ئې وو چه دواپس راتلو نه وړاندې به هغه ته مرګ راځی. خلقو به اوښان حلال كړل نود هغوی دمعدې
نه په يو ځائ كښې جمع شوې اوبه به ئې راويستلې او هغه به ئې څكلې او بچ شوې څه حصه اوبه به ئې
په خپل خيګر اچولې. نو حضرت ابوبكر رضي الله عنه اوفرمائيل يا رسول الله ﷺ الله ﷻ خو ستاسو دعا ته د قبليدو
عزت بښلې دې. زمونږ د پاره دعا اوكړئ حضور ﷺ اوفرمائيل چه آيا ته داسې غواړې؟ صديق اكبر رضي الله عنه
اوفرمائيل او، نو حضور ﷺ دواړه لاسونه د دعا د پاره اوچت كړل او لا دعا ختمه هم نه وه چه اوريځې
راخورې شوې اوښه باران اووريدو. بيا لږ ساعت كښې اوبه اودريدې. خلقو خپل لوښی ډك كړل. اوس
چه مونږ د لښكر د ځائ نه بهر راووتلو نو اوموكتل چه د دې ځائ نه اخوا اوبه نه دی وريدلی. ابن جرير
رحمه الله د الله ﷻ د ارشاد ﴿لَقَدْ تَابَ اللَّهُ﴾ باره كښې وائي چه په دې آيت كښې دعسرة نه مراد نفقه د لارخرچ
اوداوبو سختی مراد ده ﴿مِنْ بَعْدِ مَا كَادَ﴾ يعنی دې نه پس دهغوی زړه بدګمان او دشك د وجې كاږه شو د حق
نه اخوا شوی ووكوم مشقت مصيبت اوسختی چه پدې سفر كښې وه هغې سره دخلقو زړونه درسول
الله ﷺ دين نه په شك كښې پريوتل. نو الله ﷻ په هغوی باندې رحم اوكړو اوخپل طرف ته ئې درجوع
كولو توفيق وركړو او اثبات على الدين عزت ئې نصيب كړو. هغه خو ډير مهربان اورحيم دې(۲)

| وَّعَلَى الثَّلٰثَةِ |
|---|
| اورجوع درحمت ئې اوكړه په دريو كسانو |
| او په هغه دريو كسانو چې |

---

(۱) الطبری: ۵۴۰/۱۴.
(۲) الطبری: ۵۳۹/۱۴.

الَّذِيْنَ خُلِّفُوْا ۭ حَتّٰٓى اِذَا ضَاقَتْ عَلَيْهِمُ

هغو باند | چې روستو کړې شوی وو هغوئ | ترهغې پورې | چې کله | تنګه شوه | په هغوئ باندې
دهغوئ فيصله ملتوی شوې وه | تر دې چې زمکه پرې سره د فراخئ سره اويو شئ دی تنګه شوه

الْاَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ وَضَاقَتْ عَلَيْهِمْ اَنْفُسُهُمْ وَظَنُّوْٓا اَنْ لَّا مَلْجَاَ

زمکه | سره دفراختيا دزمکې | اوتنګ شوا | په هغوئ باند | خانونه دهغوئ | اوپوهه شوا | چې نشته خانې دپناه
اوخپل ژوندورباندې بارشوا اوپه دې پوهه شو چې دالله ﷻ قهر نه بل هيڅ خانې کښې پناه نشته بې دهغه نه

مِنَ اللّٰهِ اِلَّآ اِلَيْهِ ۭ ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ لِيَتُوْبُوْا ۭ

دالله نه | مګر | خاص هم هغه ته دې | بيا | توجه اوکړه الله | په هغوئ | دپاره ددې چې واپس شی الله ته
نو الله ﷻ پرې مهربانه شو | چې دوئ آئنده هم توبه اوباسی

اِنَّ اللّٰهَ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ۝ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا

بيشکه الله | هم هغه | ډير توبه قبلونکې | رحم کونکې دې | اے هغه کسانو | چې ايمان مو راوړې دې
الله ﷻ توبه قبلونکې او مهربان دې | ..........................ائې مومنانو دالله ﷻ نه ويره کوئ

اتَّقُوا اللّٰهَ وَكُوْنُوْا مَعَ الصّٰدِقِيْنَ ۝

| اويريږی دالله نه | او شئ | دصادقانو سره
اود رښتيا خلقو سره ملګری شئ

**قوله تعالى: وَّعَلَى الثَّلٰثَةِ الَّذِيْنَ خُلِّفُوْا ۭ**

**دشاته پاتې کيدونکودريو مخلصو مسلمانانوواقعه:-** د ابن کعب رحمه الله نه روايت دې. په عزوه تبوك کښې د خپل شرکت نه کولوداستان اودحضور ﷺ سره ملګرتيانه کولوواقعه کعب بن مالك رضی الله عنه داسې بيانوی چه زه د عزوه تبوك نه علاوه په بل يوجنګ کښې هم د رسول الله ﷺ د ملګرتيا نه محروم پاتې شوې نه يم. البته په جنګ بدرکښې هم د شرکت نه پاتې ووم. خود دې شرکت نه کونکوباندې څه نيول نه وو. خبره داسې وه چه رسول الله ﷺ په دغه وخت د قريشو د يوې قافلې په خاطر د مدينې نه بهر وتلې وو. هلته د الله ﷻ د منشاء مطابق د الله ﷻ دښمنانوسره جنګ اوشو او هيڅ قرار داد هم نه وو. زه په ليلة العقبه کښې نبی کريم ﷺ سره ووم. په اسلام باندې خو مونږ وعده تړلې وه اوزما د پاره خود ليلة العقبه حاضری د عزوه بدردحاضرئی نه هم زياته خوښه وه. سره د دې چه د بدر مشهورتيا اوآزه په خلقو کښې زياته وه. اوس په عزوه تبوك کښې د حضور ﷺ سره د شرکت نه کولو واقعه دا ده چه په کوم وخت کښې د تبوك د شرکت نه پاتې شوې ووم هغه وخت زه په ډيره خوشحالئی اومالدارئی کښې ووم.

د دې نه وړاندې ماسره هيڅ کله هم دوه سورلئی نه وې شوې او په دې جنګ کښې خو مې دوه سورلئی هم ساتلې وې. رسول الله ﷺ چه به کله دجنګ اراده کوله نو په عام توګه به ئی دا خبره ډيره نه خوروله. کله چه دا جنګ شوې وو نو ډيرد ګرمئی وخت وو او لرې لرې ځنګلونوکښې سفر کول وو او ډير زيات شميروالادښمن سره مخامخ کيدل وو. حضور ﷺ په خپلو امورو کښې مسلمانان آزاد ساتلې وو چه څنګه هم غوارئی د دښمن د مقابلې تياري اوکړئی. خپله اراده ئی مسلمانانوته خودلې وه. او حضور ﷺ سره مسلمانان په ډير زيات شمير کښې وو چه شميرلې کيدې نه شو. کعب رضی الله عنه وائی چه ډيرکم به داسې خلق وو د چا د غيرحاضرئی چه حضور ﷺ ته علم نه شو کيدې بلکه ګمان ووچه د زيات شميرد وجې نه

غائب پاتې کیدونکو علم حضورﷺ ته نه شو کیدې ترکومې چه د الله ﷻ د طرف نه دوحی په ذریعه علم ورکړې شو. دا جنګ چه په کومه زمانه شوې وو هغه وخت د میوو د پخیدو وخت وو د سوری د ګنړیدو موسم وو. په داسې وخت کښې زما طبیعت د آرام او راحت غوښتلو طرف ته مائل شو. رسول الله ﷺ اونورو مسلمانانو تیارې شروع کړو.زه به سحر وختي دجهاد دتیاری د پاره وتلم خوخالی به واپس راتلم او تیارې او د سفراسباب وغیره به می هیڅ نه کول. زړه به مې غولولو چه کله زه اوغواړم په یوساعت کښې به تیاری اوکړم. ورځې تیریدې او خلقو تیاری مکمل کړه تردې چه نبیﷺ او هغوی سره یو څو نور مسلمانان پاسیدل اود جهاد د پاره روان شو. ما زړه کښې اوونیل چه یوه ورځ دوه پس به زه هم خپله تیاری اوکړم وریسې به لاړشم. په دې زمانه کښې دمسلمانانولښکر ډیر لرې تلې وو. زه د تیاری د پاره بهر راوتلم خو بغیر د تیاری نه واپس شوم. تردې چه روزانه به داسې کیدل او ورځې وتلې. لښکر جنګ اوکړو ماد روانیدو اراده اوکړه چه زربه اورسم اوشامل به شم. افسوس چه دې وخت کښې خو روان شوې وې خوآخردا هم اونه شو.اوس دحضرتﷺ دتشریف اوړلونه پس چه کله به هم بازار ته تلم نوما به دې حالت سره ډیرخفګان محسوس کولو. چه کوم مسلمان خو هم په نظرراتلو نو په هغه به دنفاق اثر ښکاریدو اویا به داسې مسلمانان ښکاره کیده چه د الله ﷻ د طرف نه به معذوره او ګوډ یان شلیان وو.

**درسول کریم ﷺ په غزه تبوک کښې دکعب تذکره::** کله چه حضورﷺ تبوک ته اورسیدو نوزه نې یاد کړم اوتپوس نې اوکړو کعب بن مالکؓ څه کوی؟ نودبنی سلمه یو سړی عرض اوکړویارسول اللهﷺ هغه خوشحالئی اوآرام هم په مدینه کښې منع کړو.نومعاذبن جبلؓ اوونیل چه تاغلط خیال اوکړو. یارسول اللهﷺ! هغه ته خو دنیکئی او ښیګړې نه علاوه بل څه ورځی نه. رسول اللهﷺ چه دا واوریده نو چپ شو اوچه کله تبوک نه واپس شو نو زه ډیر سخت خفه ووم چه اوس څه اوکړم.

**په رښتیا وئیلو کښې خلاصې وی ::** ما غلط بهانې لټولې چه دحضورﷺ د نیولونه محفوظ شم نود هر یو نه مې رائې واخسته اوچه کله معلومه شوه چه حضورﷺتشریف راوړې دې نو اوس دغلط سوچ کولو نه ما لاس واخستو.اوس ما ښه معلومه کړه چه په یوه بهانه هم نه شم بچ کیدلې. نوما د رښتیا رښتیا وئیلو اراده اوکړه.نبی کریم ﷺ چه کله د سفرنه واپس شو نو د ټولونه وړاندې جمات ته لاړو. دوه رکعته مونځ نې اوکړواوبیا ئې خلقوسره مجلس اوکړو.اوس په جنګ شرکت نه کونکی راتله اوعذراو معذرت نې کولو او قسمونه ئې خوړل اود داسې خلقو شمیر د اتیاؤ نه څه زیات وو. حضورﷺ په ظاهر حکم د هغوی سوال قبلولو اود هغوی د کوتاهو د پاره ئې د مغفرت غوښتنه کوله. خود هغوی د زړونو رازونه ئې الله ﷻ ته حواله کول. زما نمبرراغلو راغلم او سلام مې عرض کړو حضورﷺ د غصې نه ډکه مسکا اوکړه. بیا ئې ماته اوفرمائیل دلته راشه نومخامخ کیناستم.ماته ئې اوفرمائیل ته ولې پاتې شوې. آیا تا د جهادد تیاری د پاره خریداری نه وه کړې ما اوونیل یارسول اللهﷺ! که دغه وخت تاسونه علاوه مې بل چا سره خبرې کولې نو داسې مناسب عذرونه مې پیش کولې شو چه هغوی به قبلول. خکه چه ماته بحث مباحثه تکرار او معذرت ډیر ښه راځی. خو په الله ﷻ مې دې قسم وی چه په دې وخت کښې خو به زه د دروغو خبره جوړه کړم اوتاسو به راضی کړو. خو ډیر زر به الله ﷻ تاسو زمانه خفه کړی. اوکه ما رښتیا رښتیا اوونیل نود عاقبت دښه کیدو ماته د الله ﷻ نه ښه امید کیدې شی. اې نبیﷺ! په الله ﷻ قسم ما هیڅ معقول عذر نه لرلو. زما په جنګ کښې د شرکت نه کولوپه حقیقت کښې هیڅ بهانه نه وه. نو حضورﷺاوفرمائیل چه دا رښتیا دی، اوس ته لاړ شه انتظارکوه چه الله ﷻ ستا باره کښې څه حکم فرمائی، نوزه لاړم. د بنی سلمه خلق هم ماسره پاسیده او روان شو اوونی وئیل چه د الله ﷻ قسم دې نه وړاندې مونږ ته په یوه خطا باندې نه ئې لیدلې. نورو خلقو چه کوم عذرونه

پیش کړل تا د حضور ﷺ په وړاندې هیڅ عذر اونه کړو ګنې نو چه نبی ﷺ د نورو دپاره خنګه استغفار کړې وو نو ستاد پاره هم دا استغفارکافی وو. غرض دا چه خلقو په دې خبره باندې دومره زوروړکړو چه ما یو خل دا اراده کړې وه چه بیا واپس شم او څه بهانه اوکړم خوما د دې خلقو نه تپوس اوکړو چه زما په شان دبل چا هم څه صورت حال شته؟ونې وئیل چه اودوه کسان نورهم دی چه رښتیا رښتیا نی وئیلی دی.ما تپوس اوکړوهغه څوك دی. ونې وئیل مراره بن الربیع العامری او بلال بن امیه الواقفی. وئیلی شي چه دا دواړه کسان نیکان دی. په بدر کښې شریك وو او اوس زما په وړاندې د هغوی نقش قدم وو خکه زد بیا حضور ﷺ له لاړنه شوم.

**دکعب اونورو ملګرو سره د نبی ﷺ اودصحابه کرامو بائیکاټ:** :اوس معلومه شوه چه حضور ﷺ مونږ دریواړو سره دعاسلام کولونه خلق منع کړی دی. خلقو زمونږنه بائیکاټ کړېدې او زمونږ نه داسې بدل شوی چه په زمکه باندې اوسیدل ماته بوج شوندې ښکاریدو. په مونږ باندې د دې تعلقاتوپریخودو پنخوس ورځې تیرې شوې.دې دواړو خومخ پټ کړې او کور ناست دی ژاړی. زه لږ سخت مزاج ووم او قوت برداشت مې وو.تلم به او برابر به مې جمع سره مونځ کولو، بازارونوکښې ګرځیدم خو خلقو ماسره خبرې نه کولې. حضور ﷺ له به راتلم سلام به مې کولو اوکتل به مې چه دسلام په جواب کښې دحضور ﷺ شونډې مبارکې خوزیږی که نه. بیا به مې حضور ﷺ سره خواکې مونځ کولو اودسترګویه ګوټ کښې به مې حضور ﷺ ته کتل نوحضور ﷺ به ماته کتل. چه زه به دحضور ﷺطرف ته متوجې کیدلم نو مخ مبارك به نې واړولو. ترڅو چه دا موده اوږدیدله نو زه په دیوال باندې ورختو سره د ابوقتاده ﷺکورته لاړم، زما د تره خوئ وو، زما هغه ډیر خوښ وو.سلام مې اوکړونوالله هغه جواب رانه کړو. ما وئیل اې ابوقتاده ﷺ ستا دې په الله باندې قسم وی تاته نه ده معلومه چه زه الله ﷻ اودهغه رسول ﷺدوست ساتم، هغه چه واوریده نو چپ شو. ما دالله قسم ورکړو خبره مې اوکړه، بیا نې هیڅ اونه وئیل،ما بیا قسم ورکړو نو بیائې هیڅ اونه وئیل خو لکه د ناپیژندګلو په شان نې اووئیل الله ﷻ ته او رسول الله ﷺ ته علم دې. ما په چغو چغو اوژړل بیا په دبوال راوختم واپس شوم.

**کعب ته دشاه غسان خط اوهغه درګول او په اورکښې سوزول:** یوه ورځ زه دمدینې بازارکښې ګرځیدم چه د شام یو قبطی چه د مدینې په بازارکښې د خوراك څه څیزونه خرڅول خلقوته نې اووئیل چه د کعب بن مالك ﷺ څه پته راکړئ. هغه خلقو زماطرف ته اشاره اوکړه نو هغه ماله راغلو او د شاه غسان یوخط نې ماته حواله کړوزه خو لوستونکې لیکونکې ووم نو اومې لوستلو لیکلې نې وو: " مونږ ته خبرملاؤشوې دې چه ستا آقا په تاسختې کوی. الله ﷻخوته څه معمولې سړې نه نې جوړکړې،ته خوڅه پریوتلې نه نې،ته مونږ له راشه مونږ به په تا مهربانئ اوکړو"مالوستلوسره اووئیل چه زه اوس شوې وې دالابل مصیبت راپریوتلو. ما دا خط په اور کښې وراوتونبلو او چه کله په پنخوسو کښې څلوښت ورځې تیرې شوې نو د حضور ﷺ یو قاصد ما له راغلوحضور ﷺحکم کړې دې چه د خپلې ښځې نه جدا شه. ما تپوس اوکړو چه څه حکم دې طلاق ورکړم؟ ونیل نه صرف جدا اوسیږه اونیزدیکت مه کوه. ونې وئیل چه د نورودواړو باره کښې هم دا حکم دې.ما خپلې ښځې ته اووئیل چه پلار کره لاړه شه ترڅو چه د الله ﷻ بل څه حکم راشی.دبلال بن امیه بی بی حضور ﷺ له راغله او عرض نې اوکړو یارسول الله ﷺ! بلال یو بوډا ضعیف دې د هغه د خدمت د پاره څوك نشته که زه د هغه په خدمت کښې لګیا یم نو تاسوته خوبه نامنظوره نه وی. حضور ﷺاوفرمائیل چه ښه ده خوتاسره به نیزدیکت نه کوی. ونې وئیل د هغه غریب خو خوزیدل راخوزیدل ګران شوی دی.ستاسود خفګان د ورځې نه ترننه پورې یو شان ژاړی. زما د کوروالا د خلقو نه یوکس اووئیل ته هم د رسول الله ﷺ نه دخپلې ښځې د خدمت اجازت واخله لکه څنګه چه بلال ته اجازت ملاؤشو ما وئیل چه په الله ﷻ قسم زه به د دې خبرې حضور ﷺته

درخواست اونه کړم،نه ده معلومه چه حضور ﷺ به څه فرمانی زه خوخوان سړی یم ماته د چانه دخدمت اخستلو هیڅ ضرورت نشته.اوس مونږ نوري لس ورځي تیري کړي اود دي تعلقاتو ختمیدوپنځوسمه ورځ وه.

**د باتیکاټ په پنځوستمه ورځ زیری:** پنځوسمه ورځ باندي سحر دخپل کور په چت باندي د سحر مونځ مي اوکړواو پدي حال کښي ناست ووم لکه چه الله ﷻ په خپل کلام مجید کښي فرمانیلي یعنی زماځان په ما باندي دروند ښکاریدو،دا کولاؤدنیا په ما تنګه محسوس کیدله. چه د سلع دغر نه د یو آواز کونکی آواز زما په غوږ کښي پریوتلو، هغه په اوچت آواز سره وئیل اې کعب بن مالک ﷺ خوشحاله شه. زه دا اوریدو سره په سجده کښي پریوتلم او پوهه شوم چه الله ﷻ اوس زما توبه قبوله کړه. د مصیبت زمانه تیره شوه.د سحرمونځ نه پس رسول الله ﷺ خبر واورولوچه الله ﷻ د دي دريواړو توبه قبوله کړه. خلقومونږ ته زیری راکولو د پاره رامنډي کړي هغه دواړوله هم لاړل اوما له هم یو په اس سور په ډیره تیزئی سره راغلو خو په غرباندي دختونکی آواز ډیرزیات کامیاب شو اوماته ډیر زر خبر ملاؤشو. ځکه چه د اس د رفتار نه د آواز رفتار ډیر تیز وی. کله چه هغه سړي ما سره ملاؤ شود چا آواز چه ما اوریدلي وو نو هغه ته د زیری په صله کښي مي خپلي کپړي اوویستلي اوورواميي غوستلي. والله هغه وخت ماسرد بله جوړه نه وه او د چا نه مي قرض کپړي واخستي اوواميي غوبښتلي.زه د حضور ﷺ په خدمت کښي دتلو دپاره اووتلم. خلق به ماسره په لارکښي ډلي ډلي ملاؤیدل اوماته به ئي مبارکی راکوله.زه چه جمات ته داخل شوم نو حضور ﷺ خلقو په مینځ کښي ناست وو زما په کتلو طلحه بن عبدالله ﷺ رامنډي کړي ماسره ئي لاس ملاؤکړو اومبارکی ئي راکړه. په مهاجرینوکښي چا هم د هغه نه بغیرداسي کار نه ووکړي. کعب ﷺ د طلحه ﷺ دا خلوص چري هم هیر نه کړو. زه راغلم او رسول الله ﷺ ته مي سلام اوکړو. د حضور ﷺ مخ مبارك د خوشحالئی نه اوبرقیدو. وئي فرمائیل خوشحاله شه کله نه چه ته پیدا شوي ئي داسي د خوشحالئی ورځ به په تا نه وی راغلي. ما تپوس اوکړو یارسول الله ﷺ دا زیري ستاسود طرف نه دي که د الله ﷻ د طرفنه؟حضور ﷺ اوفرمائیل دالله ﷻ د طرف نه. کله به چه نبی کریم ﷺ خوشحاله شونودهغوی مخ مبارك به اوبرقیدولکه دسپوږمئی ټکړه اودحضور ﷺ خوشحالی به د هغوی د مخ مبارك نه معلومیده. ما حضور ﷺ ته عرض اوکړو یارسول الله ﷺ! زما د توبه د قبیلدو برکت دا کیدل پکار دی چه زه خپل ټول مال اومتاع د الله ﷻ او رسول الله ﷺ په لارکښي قربان کړم. حضور ﷺ اوفرمائیل چه نه داسي مه کوه څه کیږده او څه صدقه کړه دغه بهتر صورت دي. ما وئیل چه د خیبر نه کومه حصه ماته ملاؤشوي وه هغه به زه کیږدم. یارسول الله ﷺ! دربښتیاؤ په برکت الله ﷻ ماته خلاصي راکړو دالله ﷻ قسم چه ما ترکومي د الله ﷻ رسول ﷺ سره د ربښتیاؤ وعده کړي ده بیا مي چري هم دروغ نه دی وئیلي، اود الله ﷻ نه مي دعا ده چه په راتلونکی وخت کښي هم زما نه دروغ اونه وئیلي شي.

د الله ﷻ ارشاد ﴿لَقَدْ تَّابَ اللّٰهُ عَلَى النَّبِيِّ وَالْمُهٰجِرِيْنَ وَالْاَنْصَارِ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُ فِيْ سَاعَةِ الْعُسْرَةِ مِنْۢ بَعْدِ مَا كَادَ يَزِيْغُ قُلُوْبُ فَرِيْقٍ مِّنْهُمْ ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ ۚ اِنَّهٗ بِهِمْ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ﴾ باره کښي حضرت کعب ﷺ وائی د الله ﷻ قسم د کله نه چه ما اسلام قبول کړي دي د الله ﷻ د دي نه بل لوئي نعمت به څه کیدي شي چه الله ﷻ ماله د حضور ﷺ په وړاندي د ربښتیاؤ وئیلو توفیق رانصیب کړوګني زه به هم اوس داسي هلاك شوي ووم لکه چه د حضور ﷺ په وړاندي نورو چه دروغ مروغ ویونکی دآخرت د ژوند په لحاظ چه تباه شو. د داسي خلقو باره کښي الله ﷻ ارشادفرمائی ﴿سَيَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ لَكُمْ﴾ یعنی چه کله ته د هغوی طرف ته واپس شوي نو قسمونه خوړلو سره دا خلق تاته وائی د دي د پاره چه ته د دوینه ډډه اوکړي د دوی زړونه ناپاك دي اود دوی ځائ دوزخ دي.ځکه چه هغوی کا...سي کړي.قسمونه خوری دي د پاره چه تا راضی کړي.که ته د هغوی نه دهوکه

اوخوري اوراضي هم شي نو څه اوشو الله ﷻ خو د دي بدکارانونه راضي کیږي نه.د دي ایت تلاوت کولو نه پس حضرت کعب﷛ وائي چه زمونږ د دریوارو کسانو فیصله د هغه خلقو نه شاته اچولي شوې وه کوموخلقو چه ددروغو قسمونه خوړلي وو او حضورﷺ په ظاهره منلي وو اود هغوی بیعت ئې قبول کړي وو اود هغوی د پاره ئې استغفار هم کړي وو خو زمونږ فیصله حضورﷺ بنده کړې وه تر دې چه الله ﷻ دا آیت ﴿ وَّعَلَى الثَّلٰثَةِ الَّذِيْنَ خُلِّفُوْا ﴾ راوليګلو.

د (خُلِّفُوْا) صحیح مطلب::دا مونږ روستوپریخودلونه مطلب دا وو چه زمونږ فیصله ئې شاته پریخودې وه اودا نه چه مونږ د جنګ دشرکت نه روستو پاتې شوي وو(١) هم دغه حدیث صحیح اوثابت دې او متفق علیه دې. بخاري اومسلم شریف هم دحدیث زهري نه هم دغه شان روایت کړې دې.دحدیث داحسن کیدو سره ددې آیت مبارك تفسیر کوی.په سلفوکښې تقریبا ټولوداسې تفسیرکړې دې.دجابربن عبدالله ﷛ هم د دې آیت متعلق هم دغه قول دې. چه دا د کعب بن مالك﷛ بلال﷛ بن امیه او مراره ﷛ بن ربیع دې اودا ټول انصار وو.اومجاهد ضحاك اوقتاده ﷭ وغیره هم دغه ونیلي دی. ټولو مراره بن ربیع ﷛ ونیلي دې او په مسلم کښې ابن ربیعه لیکلي دې. خو په بعضې نسخو کښې مراره بن ربیع، بخاري او مسلم کښې مراره بن ربیع لیکلي دې. اوروایت هم دغه دې اودا چه ونیلي شوی وو چه دواړه په بدرکښې شریك وو دا دزهری غلطی ګڼرلي شوې ده څکه چه په دې دروارو کښې یو هم په غزوه بدر کښې نه وو. والله اعلم.

کله چه الله ﷻ ددې دریوارود فراخئې ذکراوفرمائیلو په کوموکښې چه هغوی د مسلمانانود بائیکاټ پنځوس ورځې تیرې کړې وې اود هغوی خانونه اودهغوی دنیا په هغوی باندې تنګه شوې وه، بهر تلل راتلل دهغوی بندشوی وو.دهغوی په پوهه کښې هیڅ نه راتلل چه څه اوکړي بغیرد دې نه چه صبر اوکړي اوپه خپل ذلت اواستکانت باندې راضي وی. خود نبی کریمﷺ په وړاندې درښتیا ونیلو په سبب بل هیڅ عذر نه پیش کولوپه سبب الله ﷻ په هغوی باندې فراخي راوستله او څه مودې پورې هغوی په عذاب کښې ساتلو نه پس ئې د هغوی توبه قبوله کړه. د دې وجې اوفرمائیلي شو﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَكُوْنُوْا مَعَ الصّٰدِقِيْنَ۝﴾یعني اې ایمانداروربنتیا ضروری اوګڼرئې نو د هلاکتونو اومصیبتونو نه به بچ شئې.د ابن مسعود﷛ نه روایت دې چه حضورﷺ فرمائیلی صرف ربنتیا وائې څکه چه ربنتیا نیکی ده او نیکی جنت ته رسول کوی. کوم سړې چه ربنتیا وائي د الله ﷻ په دفترکښې ربنتوني لیکلي کیږي. د دروغونه لرې اوسیږئې،دروغ د فسق او فجور طرف ته اوړل کوی او فجوردوزخ ته رسول کوی. سړې چه کله هم دروغ وائي نود الله ﷻ په دفترکښې دروغژن لیکلي کیږي. داحدیث شریف په بخاري او مسلم شریف کښې درج دې(٢) ابن مسعود﷛ فرمائي چه دروغ نه په صحیح توګه ونیلي شي اونه په ټوقوکښې.که غواړې نولوله ﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَكُوْنُوْا مَعَ الصّٰدِقِيْنَ۝﴾بیا ئې اوونیل چه آیا تاسو پوهیږئې چه څوك هم د دې حکم نه خلاصې دې شي. عبدالله بن عمر﷛ فرمائي چه د مع الصادقین نه مراد محمدﷺ اودهغه صحابه کرام ﷡ دی.ضحاك ﷫ وائي حضرت ابوبکر ﷛ اوحضرت عمر﷛ مراد دی. حسن بصری ﷫ وائي که تاسو صادقینوسره کیدل غواړئې نود دنیا نه زهد اوپرهیزګاری اختیارکړئې اوخلقو سره ملاویدل کم کړئې.

---

(١) صحیح بخاري کتاب المغازي باب حدیث کعب بن مالك:۴۴۱۸،صحیح مسلم:۲۷٦۹، ترمذي:۳۱۰۲، ابن حبان:۳۳۷۰.

(٢) صحیح بخاري کتاب الادب باب قول الله ﴿یایها الذین امنوا اتقوا الله وکونوا مع الصادقین﴾:۶۰۹۴ صحیح مسلم:۲٦۰۷.

مَا كَانَ لِاَهۡلِ الۡمَدِيۡنَةِ

| نه دی مناسب | دپاره دخلقو دمدینې

د مدینې خلقو دپاره

وَمَنۡ حَوۡلَهُمۡ مِّنَ الۡاَعۡرَابِ اَنۡ يَّتَخَلَّفُوۡا

اوډیر چاپیره بانډیچیانو لره اودپاره دهغه چاچې چاپیره دهغوئ نه دی ادبانډې دخلقو نه | داخبره چې روستې پاتې شوې وي

او د دوی نه ګیرچاپیره بانډیچانو دپاره مناسب نه دی اچې د الله ﷺ د رسول نه روستو پاتې شي

عَنۡ رَّسُوۡلِ اللّٰهِ وَلَا يَرۡغَبُوۡا بِاَنۡفُسِهِمۡ عَنۡ نَّفۡسِهٖ

درسول دالله نه |اونهٔ دا چې مینه اوکړې | دخانونو خپلو سره اوچې بې پروا شي دنفس دهغه نه

اوخپل ځان ورته د پیغمبر نه خوږ ښکاره شي |دا ځکه چې دوئ ته

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمۡ لَا يُصِيۡبُهُمۡ ظَمَاٌ وَّلَا نَصَبٌ وَّلَا مَخۡمَصَةٌ

دا | ځکه چې بیشکه دوئ چې دی | نهٔ رسیږی دوئ ته | تنده اونهٔ ستړې والې | اونهٔ لوږه

د الله ﷺ په لار کښې تنده یا ستومانی یا لوږه نه د رسیدلې

فِيۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ وَلَا يَطَـُٔوۡنَ مَوۡطِئًا يَّغِيۡظُ الۡكُفَّارَ وَلَا

په لار دالله کښې | اونهٔ ږدی دوئ قدمونه | په داسې لار چې غصه کوی | کافران | اونهٔ

| او په داسې لاره نه دی تلی چې کافر پرې غصه کیږی | او د دښمن نه

يَنَالُوۡنَ مِنۡ عَدُوٍّ نَّيۡلًا اِلَّا كُتِبَ لَهُمۡ

حاصلوی دوئ قابو | په دشمن باند | په قابو حاصلولو سره | مګر | لیکلې کیږی | دپاره ددوئ

نې بدله نه ده اخستې | مګر په دې هر یو کار باندې د ددوئ دپاره

بِهٖ عَمَلٌ صَالِحٌ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيۡعُ اَجۡرَ الۡمُحۡسِنِيۡنَ

په هغې سره | عمل نیك | بیشکه | الله | نهٔ ضائع کوی | بدله | دنیکانو خلقو |

نیکی لیکلې شی | الله ﷻ دنیکانو اجر نه ضائع کوی |

**قوله تعالی:: مَا كَانَ لِاَهۡلِ الۡمَدِيۡنَةِ**

**درسول الله ﷺ ملګرتیاکونکو صفت اودروستوپاتې ګیدونکومذمت.** - عزوه تبوك کښې اهل مدینې کوم عرب قبائل دجهاد د شرکت نه پاتې شوي وو او ځوك چه د جنګ مشقت نه رسول الله ﷺ سره رسیدلې وو په هغوی کښې دهمدردنې اوعمل داشتراك په ځانې نې آرام خوښ کړې ووهغوی باندې الله ﷻ نیول کوی چه هغوی خپل ځان دثواب نه محروم کړو.نه هغوی دتندې تکلیف اوچت کړواونه هغوی ته غم او خفګان اورسیدو نه دولړې سره مخ شواونه په دې موقف کښې راغله چه کافران اوویروی اونه نې په کافرانوباندې دغلبې اوکامیابۍ شرف حاصل کړو.خوهغوی داسختنې تیرې کړې اوداهرڅه د هغوی دذاتی عمل په وجه وو فطری اوجبری نه وو په دې وجه الله ﷻ دداسې نیکوکارو اجرنه ضائع کوی. لکه چه فرمائی ﴿ اِنَّا لَا نُضِيۡعُ اَجۡرَ مَنۡ اَحۡسَنَ عَمَلًا ﴾.

| وَلَا يُنۡفِقُوۡنَ | نَفَقَةً | صَغِيۡرَةً | وَّلَا كَبِيۡرَةً | وَّلَا يَقۡطَعُوۡنَ | وَادِيًا | اِلَّا | كُتِبَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اونه لګوی | څه خرچه | لږه | اونه ډیره | اونه وهي لار | دیو میدان | مګر | لیکلې کیږي |

اوداسې نه کیږي چې دوئ دې خرڅ اوکړي لږ یا ډیر او یا دې دوئ د یو میدان نه تیر شي | او هغه دې

| لَهُمۡ | لِيَجۡزِيَهُمُ | اللّٰهُ | اَحۡسَنَ | مَا | كَانُوۡا | يَعۡمَلُوۡنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دپاره ددوئ | چې بدله ورکړي دوئ له | الله | دډیروښو کارونو | هغوا | چې ووډدوئ | چې کول به ئې |

اونه لیکلې شي داځکه چې الله ﷻ دوئ ته دنیکو کارونو ډیره ښائسته بدله ورکړي |

**قوله تعالى: لِيَجۡزِيَهُمُ اللّٰهُ اَحۡسَنَ مَا كَانُوۡا يَعۡمَلُوۡنَ**

**دفي شبيل الله جهاد نيکه بدله.** ارشاد دې چه دا غازیان خلق دالله ﷻ په لارکښې لویه وړه خرچه هم کوی اوکافرانوسره دجنګ دپاره دځنګل لږه شان لارباندې هم ځي.نوددې اجرهغوی ته خامخا ملاویږي.دلته ﴿اِلَّا كُتِبَ لَهُمۡ﴾ اوفرمائیلې شو او په تیرشوی آیت کښې﴿ اِلَّا كُتِبَ لَهُمۡ بِهٖ﴾ ددې ﴿به﴾ مطلب دادې چه دا نفقه یامشی﴿الی اعداء﴾ دهغوی ذاتی عمل دې. په دې وجه په آیت مبارك کښې ﴿ مَا كَانُوۡا يَعۡمَلُوۡنَ﴾ اوفرمائیلې شو او په وړاندینی آیت کښې دالله ﷻ په لارکښې ولړه تنده وغیره تکلیف د الله ﷻ د طرف نه وو.په دې وجه ئې نه﴿به﴾ راوړلې شو اونه ئې عمل د هغوی طرف ته منسوب کړې وو.امیر المؤمنین عثمان بن عفان ﷛ د دې آیت مبارك نه ﴿حظ﴾زیات اوعظیم نصیب حاصل کړو ځکه چه په دې عزوه تبوك کښې هغوی لښکر په خپله نفقات جلیله اواموال جزیله ورکړې دی. د ابن خباب السلمی ﷛ نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ خطبه ورکړه اود دې لښکر د امداد د پاره ئې قوم رابیدار کړو نوعثمان ﷛ اووئیل چه زما د طرف نه سل اوښان سره دکجاوړ پړو او رکابونوشو. حضور ﷺ بیا د قوم نه چنده طلب کړه نوعثمان ﷛ اووئیل نورسل اوښان سره د سازوسامان نبی کریم ﷺ منبرنه یوه پوړئی راکوز شواو بیا ئې اوفرمائیل اې خلقو د نور امداد ضرورت دې. نوحضرت عثمان ﷛ اووئیل نور سل اوښان سره د سازوسامان. نوما رسول الله ﷺ اولیدلو چه دخوشحالئی نه ئې خپل لاسونه مبارك داسې خوزول (عبدالصمد آخری راوی دې وائیلو سره خپل لاسونه اوخوزول). حضور ﷺ اوفرمائیل اوس په عثمان ﷛ باندې هیڅ تکلیف نه دې پکارچه عمل اوکړي[1] بیاعثمان ﷛ رسول الله ﷺ له د زرواشرفو یوه تهیلئی راوړه او عرض ئې اوکړو چه د لښکر په دې سره تیاری اوکړئی دنبی کریم ﷺ په غیږ مبارکه کښې داپیسې واچولې.حضور ﷺ به دې اشرفوته حرکت ورکولواو فرمائیلې د نن نه به عثمان ﷛ ته د هغه یوعمل هم ضرر نه رسوی. هم دایوعمل د ده دخلاصی د پاره کافی دې اوحضور ﷺ به دخوشحالئی نه دارقم بار بار خوزولو[2] قتاده ﷫ دالله ﷻ ارشاد ﴿ وَلَا يَقۡطَعُوۡنَ﴾باره کښې وائی چه د الله ﷻ په لار کښې سفر کونکی خلق چه څومره لرې ځی هم دومره د الله ﷻ نیزدیکت کښې وړاندې کیږي.[3]

| وَلَا يُنۡفِقُوۡنَ |
|---|
| اونه لګوی |
| اوداسې نه کیږي |

[1] ترمذی کتاب المناقب باب تجهیز جیش العسرة: ٣٧٠٠، احمد: ٥/٧٥، مسندالطیالسی: ١١٨٩، التاریخ الکبیر: ٥/٢٤٦، حلیة الاولیاء: ١/٥٨، دلائل النبوة: ٥/٢١٤.

[2] ترمذی حواله سابقه: ٣٧٠١ وسنده حسن، احمد: ٥/٦٣، حاکم: ٣/١٠٢.

[3] الطبری: ١٤/٥٦٥.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| نَفَقَةً | صَغِيْرَةً | وَّلَا كَبِيْرَةً | وَّلَا يَقْطَعُوْنَ | وَادِيًا | اِلَّا | كُتِبَ | لَهُمْ |
| خه خرچه | لږه | اونه ډيره | او نه وهي لار | ديو ميدان | مګر | ليکلي کيږي | دپاره ددوئ |
| چي دوئ دي خرڅ اوکړي لږ يا ډير او يا دي دوی د يو ميدان نه تير شي او هغه دي اونه ليکلي شي | | | | | | | |
| لِيَجْزِيَهُمُ | اللّٰهُ | اَحْسَنَ | مَا | كَانُوْا | يَعْمَلُوْنَ۝ | وَمَا كَانَ | |
| چي بدله ورکړي دوئ له | الله | دډيرو ښو کارونو | هغوا | چي وو دوئ | چي کول به ئې | اونه وه ضرور | |
| داځکه چي الله ﷻ دوئ ته دنيکو کارونو ډيره ښائسته بدله ورکړي ...........اوداسي نه شي کيدي | | | | | | | |
| الْمُؤْمِنُوْنَ | لِيَنْفِرُوْا كَآفَّةً | فَلَوْلَا | نَفَرَ | مِنْ كُلِّ | فِرْقَةٍ | مِّنْهُمْ طَآئِفَةٌ | لِّيَتَفَقَّهُوْا |
| چي مؤمنانو | وتلي وي ټول | خو ولي | اونه وتل | ادهري ډلي | ددوئ نه | ايوه ډله | چي پوهه ئې حاصله کړي وي |
| چي مومنان دي ټول په يو ځل روان شي خو داسي ولي نشي کيدلي چي دهري ډلي نه دي يو ډله | | | | | | | |
| فِي الدِّيْنِ | وَلِيُنْذِرُوْا | قَوْمَهُمْ | اِذَا | رَجَعُوْا | اِلَيْهِمْ | | |
| په دين کښي | او چي خبردار کړي ئې وي | خلق دقوم خپل | کله چي | واپس تللي وي | هغوئ ته | | |
| (په سفر) اوځي چي ددين مسئلي زده کړي او چي واپس راشي نو نور خلق خبر کړي | | | | | | | |
| لَعَلَّهُمْ | يَحْذَرُوْنَ۝ | | | | | | |
| دپاره ددي چي هغوئ | ځان بچ کړي وي | | | | | | |
| چي هغوئ ځان (دکفر او ګناه نه بچ کړي) | | | | | | | |

قوله تعالى: وَمَا كَانَ الْمُؤْمِنُوْنَ لِيَنْفِرُوْا كَآفَّةً

**جهاد او د دين تعليم او تبليغ اوددي پحقله د سلفو اقوال:-** په دي آيت کښي ددي خبري ذکر دي چه په غزوه تبوک کښي خلقو دنبی ﷺ سره د تلو اراده اوکړه نو د سلفو ديوي ډلي دا خيال دي چه کله رسول الله ﷺ د جنګ دپاره اوځي نو په هرمسلمان باندي تلل واجب دی او هم دغه وجه ده چه الله ﷻ ارشاد فرمائيلي دي ﴿انْفِرُوْا خِفَافًا وَّثِقَالًا﴾ يعنی سپک اوبارکړي شوي اوځئ. اودا هم الله ﷻ فرمائيلی چه د مديني والا ته هيڅ حق نشته چه په جهاد کښي د رسول الله ﷺ نه شاته پاتي شي.(ترآخرپوري) [1] او حضور ﷺ فرمائيلی چه پدي آيت سره پورتني آيت منسوخ شوي دي. او وئيلي شي چه د ټولو قبيلو سفر کول يا د يوي قبيلي نه بعضي کسانو سفر کول چه کله ټول اونه ځي.د الله ﷻ د آيات مقصد دادي چه په سفر باندي نه تلونکی او نبی کريم ﷺ سره پاتي کيدونکی دي نازليدونکي وحی ليکی اوياد ئې ساتي او د جنګ کونکو واپس شوو خلقو ته دي د الله ﷻ احکام ښائي او د سفرنه واپس کيدونکی دي دا ښائي چه دښمن سره څنګه وخت تيرشو او د کافرانو څه حالات دی. اوس په دي مقرر شوی سفر کښي دوه خبري راجمع شوي. يو سفر معينه د هغه خلقو کوم چه جهاد له روان دی بل د هغه خلقو قيام چه د پوهي د پاره حضور ﷺ سره حصار دی. څکه چه دا فرض کفايه ده که يو څوکسان ئې اونه کړي نو چه يوڅو کسانو د پاره ضروری او فرض دی.ابن عباس ﷺ خودلی دی ﴿وَمَا كَانَ الْمُؤْمِنُوْنَ لِيَنْفِرُوْا كَآفَّةً﴾ په آيت کښي الله ﷻ فرمائی چه مؤمنانو له نه دی پکار چه ټول په يو دنبی کريم ﷺ نه لارشی او نبی ﷺ يوازي پريږدی. اوداسي دي ولي نه وی چه دهري ډلي نه يو څوکسان لارشي او چه باقی د رسول الله ﷺ سره د

[1] ۹/التوبة:۱۲۰.

دين پوهه حاصله کړي او چه کله واپس شي نو خپل قوم دې خبر کړي اود الله ﷻ نه دې اوويروي. او چه ترکومې حضورﷺ دسفر إجازت ورنه کړي نونه دې خي. اوددې ډلو په غيرحاضرئی کښې چه کوم قرآن نازل شوي دې نبی کريم ﷺ سره حصاريدونکی دې هغوی خبرکړي او وائی دي چه الله ﷻ په نبی پاکﷺ باندې دا قرآن نازل کړې وو. مونږ زده کړواوس تاسودسفرنه واپس شونې نوتاسو هم زده کړئی. اوبيا دې نورې ډلې اوليګلې شی ﴿لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُونَ﴾ چه هغوی هم بچاؤ اوکړې شی.(١)

مجاهد رحمه الله وائی چه دا آيت مبارك دحضورﷺ په ملګروکښې د هغوی باره کښې نازل شوې دې چه زده کړه ئی کړې اوخپل کلو ته تلی دی هلته دخلقو نه مفادات حاصل شو راحت او آرام ورته ملاؤشو. مال ئی هم اوګټلو او خلقو ته ئی ددين تبليغ هم اوکړو. خو خلقو هغوی ته اوونيل چه تاسو نبی کريم ﷺ اوصحابو سره ملګرتيا پريخودله مونږ له راغلئی اودنبی کريم ﷺ د صحبت نه اخوا شونې. نو هغوی په خپلو زړونوکښې تنګی محسوس کړه. هغوی ټول د کلو نه حضورﷺ له راغلل هم د دې خيز په صفائی کښې الله ﷻ فرمائی چه هيڅ بدی نشته که يوډله لاړه شی نفقه هم حاصله کړي اودنبی کريمﷺ ملګرتيا کولوسره د حديث او وحی اوريدل هم اوکړي اوکلو ته لاړ شی اوخلق د الله ﷻ نه اوويروي. څه عجيبه ده چه هغوی ته هدايت اوشي. قتاده رحمه الله وائی چه دا آيت په داسې موقع نازل شوې دې کوم وخت چه حضورﷺ د حملې کولو د پاره لښکر ليګلې وو. الله ﷻ هغه د دې خبرې د پاره مامور اوساته چه دحضورﷺ په ملګرتيا کښې جنګيږئی خو دويمه ډله دې رسول الله ﷺ سره وی چه ددين پوهه زده کړي او بله ډله دې کلوته خپلوقبيلو او خاندانونو ته لاړه شی اودالله ﷻ دعذاب نه دې هغوی اوويروي. کوم عذاب چه د دوی نه وړاندينوخلقو باندې نازل شوې وو. ضحاك رحمه الله وائی چه کله رسول اللهﷺ پخپله د جهاد دپاره لاړشی نو داهل عذر نه علاوه چاته هم اجازت نشته چه روستوپاتې شی. خو که حضورﷺ پخپله لاړ نه شی او لښکر اوليګي نو اوس دحضورﷺد اجازت نه بغير څوك په لښکر کښې نه شی شريکې دې. څوك چه د حضورﷺ ليګلی شوی لښکر سره لاړشی اود هغوی په غيرموجودګئی کښې کومه وحی نازل شوی وی اوحضورﷺ خپل خان سره روستو پاتې شوخلقو ته اورولې وی نوچه کله دالښکر واپس راشی داحصارشوی دې هغوی ته واوروی چه ستاسو د تلونه پس دا وحی نازل شوې ده اوهغوی له دې هم په دين کښې پوهه ورکړي. ټول په ټول نه تلو حکم په دې صورت کښې دې کله چه رسول اللهﷺ لښکرليګلې وی او اوپخپله حصارشوې وی. دابن عباس رضی الله عنه نه روايت دې چه د﴿لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُونَ﴾والا آيت د جهاد باره کښې نه دې چه کله رسول الله ﷺ دقبيله مضر دقحط دپاره بددعا اوفرمانيله او ټول قحط راګيرکړل نو ټول مدينې ته راغلل اوسيدل اوخان ئی د دروغومسلمانان ښکاره کول. درسول اللهﷺ په صحابو باندې د هغوی ميلمستيا ګرانه شوه نو الله ﷻ د وحی په ذريعه رسول اللهﷺخبرکړو چه دا خو په حقيقت کښې مسلمانان نه دی نو حضورﷺ دوی خپلوخپلو قبيلو ته واپس کړل اوبيا داسې کولونه ئی منع کړل. ارشاد دې ﴿وَلِيُنذِرُوا قَوْمَهُمْ إِذَا رَجَعُوا إِلَيْهِمْ﴾د دې آيت باره کښې ابن عباسرضی الله عنه فرمائی چه دعربو د هرې يوې قبيلې نه خلق حضورﷺ له ډلې ډلې راتلل، دې خلقو به د حضورﷺ نه د دينی امورو باره کښې تپوسونه کول او په دين کښې به ئی پوهه حاصلول غوښتل. دې نورو به دحضورﷺ نه تپوس کولو چه مونږ ته د کوم خدمت ادا کولوحکم دې او ونيل به ئی چه خپلو قبيلوته لاړ شو نو څه به وايو، نو حضورﷺ به هغوی ته د طاعت الله او طاعت رسول تلقين کولو او فرمائيل به ئی چه په خپلو خلقو کښې مونځ او زکوة خورکړئی. هغوی به خپل قوم ته ونيل چه که اسلام راوړئی نومونږ تاسوسره يو ګنی نو نه يو او هغوی به ئی د الله ﷻ نه ويرول. او هغه خلق چه کله به

---

(١) الطبری: ٥٦٧/١٤.

خپلو خلقوته تللي نوهغوی به نی ددين طرف ته رابلل.د اوراودوزخ نه به نی ويرول او دجنت زيري به نی ورکولو.عکرمه رحمه الله وائی چه کله داآيت نازل شو نو منافقانو به ونيل چه او خو هغه کلي وال مسلمانان هلاك شوکوم چه حضورﷺ سره جهاد له نه وو وتلی او روستو پاتې شوې وو. حالانکه هغه خلقو خودنبی کريم ﷺ په صحابوکښې هغه خلق وو چه خپل قوم ته د دين خودلود پاره تلی وو او په جنګ کښې د شرکت نه کولوسبب ئی دا جوړکړې وو.نو الله ﷻ دا بيان اوفرمائيلو چه دغه خلق دې ولې جنګ له لاړشی بعضې خلقو دې نورو ته ددين خودلو د پاره ولې حصاز نه شی اودا آيت نازل شو ﴿وَالَّذِيْنَ يُحَآجُّوْنَ فِي اللّٰهِ﴾ حسن بصری رحمه الله وائی چه د دې آيت مقصد دا وو چه کوم خلق جنګ له تلی دی نو چه کله خپلو خلقوته واپس راشی نو چه د جنګ په نتيجه کښې هغوی خپله کومه غلبه په کافرانو باندې ليدلې اود اسلام شانداره فتح نی ليدلې د هغې نه خلق خبر کړی.

| قَاتِلُوا | اٰمَنُوْا | يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ | | |
|---|---|---|---|---|
| جنګ کوئ | اې هغه کسانو اچې ايمان مو راوړې دی | | | |
| | ائي مومنانو ا کوم کافران چې ستاسونه ګيرچاپيره دی | | | |
| فِيْكُمْ | وَلْيَجِدُوْا | مِّنَ الْكُفَّارِ | يَلُوْنَكُمْ | الَّذِيْنَ |
| په تاسو کښې | اوپکاردی چې بيامومی هغوئ | دکافرانونه | چې نزدې دی تاسو ته | دهغه کسانو سره |
| هغوئ سره جنګونه کوئی | او پکار دی چې هغوئ په تاسو کښې سختې بيامومی | | | او پوهه شی |
| مَعَ الْمُتَّقِيْنَ۞ | اَنَّ اللّٰهَ | وَاعْلَمُوْٓا | غِلْظَةً ط | |
| دمتقيانو سره دې | چې بيشکه الله | اوپوهه شئ | سختی | |
| چې الله ﷻ د پرهيزګارانو ملګرې دې | | | | |

قوله تعالى: قَاتِلُوا الَّذِيْنَ يَلُوْنَكُمْ مِّنَ الْكُفَّارِ

**دجهاديواهم اصول چه دنيزدې نه جهاد شروع کول دی**:-الله ﷻ مؤمنانوته حکم ورکړې دې چه کافرانو سره جنګيرئی نواول هغه کافرانوسره اوجنګيرئی کوم چه د اسلام مرکز سره نيزدې دی. په دې وجه حضورﷺ مشرکانوسره جنګ شروع کړو نود جزيرة العرب نه نی شروع اوکړه. مکې، مدينې، طائف، يمن، يمامه، حجراو حضرموت،غرض دا چه د جزيرة العرب داسې نور اقاليم ئی اول فتح کړل او مسلمانان ئي جوړکړه اودعربوقبيلې په اسلام کښې ډلې ډلې شاملې شو.نو اوس اهل کتابوسره جنګونه شروع شو اوروم سره نی د جنګ اراده اوکړه. دا خلق د جزيرة العرب سره نيزدې اوسيدونکی دی اود دې خبرې ضرورت دې چه د اسلام دعوت د ټولونه وړاندې هم د دوی نه شروع اوشی. په دې وجه هم چه هغوی اهل کتاب دی. خوتبوك پورې رسيدوسره وړاندې نه شو واپس شو څکه چه خلق تنګ حالئه، قحط وهلی اوناسازګاره شوی وو. دا د کال نهم هجری واقعه ده، په کال لسم هجری کښې رسول اللهﷺد حجة الوداع په تياری کښې مشغول وو. اود حجة الوداع نه يواتيا (٨١) ورځې پس دنبی کريمﷺ وصال اوشو. دحضورﷺ نه پس دهغوی په حکم باندې وزير حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه شو. د دې انقلاب په وخت کښې په دين کښې يو تزلزل شان راغلې وو.خو الله ﷻ دصديق اکبر رضي الله عنه په ذريعه دين ته بيا استقامت ورکړو. هغوی دين مضبوط کړو. دعوې کونکوباندې ثابته شوه اومرتدخلق نی بيادين طرف ته راواپس کړل. کوموخلقو چه دزکوة ورکولو نه انکارکړې ووهغوی ته زکوة ورکول پريوتل.کوم خلق چه د دين دمسئلونه ناواقف ووهغوی نی خبردار کړل. اودرسول اللهﷺسره متعلق چه کوم فرائض ووهغه نی پوره کړل.

**د ابوبکرصديق رضي الله عنه په دورکښې کسری اوقيصر فتح شو**:بيا نی داسلام لښکر روم ته اوليګلو کوم چه

صلیب پرست وو اود اهل فارس طرف ته هم چه اتش پرست وو. الله ﷻ د هغوی په برکت سره دا ملکونه فتح کړل اودکسری قیصراود هغوی مذهبونوته ذلت نصیب شو.اودې دواړو ملکونوچه کومې خزانې جمع کړې وې هغه نې دالله ﷻ په لارکښې خرج کړې لکه څنګه چه رسول اللهﷺ د دې نه وړاندې خبرورکړې وو. ددې پیشن ګوئې پوره والې د حضورﷺ وصي حضرت ابوبکر ﷺ په لاس اوشو.

**دعمرفاروق ﷺ په ذریعه دمنافقانو اوسرکشانو خاتمه اوشوه:** بیادحضرت صدیق اکبر ﷺ جانشین حضرت عمربن الخطابﷺ پوره کړو.دحضرت عمرﷺ په ذریعه هغه کفارومنکرینوته ذلت اورسیدو. حضرت عمرﷺد منافقانو اوسرکشوخاتمه اوکړه اود هغوی په ټولوسلطنتونو باندې شرقًا او عربًا غالب راغله او د نیزدې اولرې ټولوملکونو خزانې نې د اسلام مرکز ته راښکلې. اودا ټول مال دولت د شریعت د احکامومطابق په حق دارو خلقو اوواجبی کارونوکښې خرج کړې شو. چه حضرت عمرﷺ ژوندې وو نو ښه نیك نوم نې وو او چه مړشونو شهیدمړشو.

**د عثمان ﷺ په ذریعه اسلام مخ په ترقئ شو:** اومهاجرینو او انصارو په اتفاق سره امیرالمؤمنین حضرت عثمان بن عفان ﷺ خلیفه جوړکړو. دحضرت عثمان ﷺ په زمانه کښې اسلام ډیر ښانست او نیك نامی حاصله کړه او په ټوله دنیا کښې په انسانانوباندې د اسلام حجت غالب راغلو. هم د دوی په زمانه کښې اسلام په مشرق اومغرب هرځائې کښې ترقي اوکړه. د الله ﷻ د کلمې رعب په هرځائې کښې په ټولو انسانانو باندې خورشو.او ملت حنیفیه د الله ﷻ په دښمنانوباندې کامله غلبه حاصله کړه. کله به په یوقوم مسلط شو اوکله په بل اوکله په داسې قوم چه دې کافرانو سره به نې سازباز ساتلو. داد الله ﷻ د دې فرمان لاندې وو﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا قَاتِلُوا الَّذِيْنَ يَلُوْنَكُمْ مِّنَ الْكُفَّارِ﴾ او ﴿وَلْيَجِدُوْا فِيْكُمْ غِلْظَةً﴾ یعنی کافرانو سره په جنګ کښې ښه سختی کوئې څکه چه کامل مؤمن هغه دې چه په خپلو باندې مهربان او په کافرانوباندې سخت نیونکې وي. لکه چه الله ﷻ فرمائی ﴿فَسَوْفَ يَأْتِي اللّٰهُ بِقَوْمٍ يُّحِبُّهُمْ وَيُحِبُّوْنَهٗٓ﴾او بل ارشاد دې ﴿مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ ۚ وَالَّذِيْنَ مَعَهٗٓ اَشِدَّآءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَآءُ بَيْنَهُمْ﴾ اودغه شان بل قول د الله ﷻ دې ﴿يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ جَاهِدِ الْكُفَّارَ وَالْمُنٰفِقِيْنَ وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ﴾ .

**نبی کریم ﷺ نبی الرحمت هم دې اونبی السیف هم:** اوپه حدیث کښې دی چه رسول اللهﷺ فرمائیلی چه زه مهربان هم یم اوجنګ کونکې هم یم.یعنی د دوستانو دپاره خوش مزاج اوددښمنانود پاره سخت جنګ کونکې. الله ﷻ فرمائی چه کافرانو سره جهاد کوئې او په الله ﷻ باندې یقین ساتئی که تاسو د الله ﷻ نه اوویریدئی اود هغه اطاعت مو اوکړونو الله ﷻ هروخت تاسو سره دې. دا خیز په قرون ثلثه کښې چه د دې امت یوه بهترینه زمانه تیره شوې ده په پوره قوت کښې وواودازمانه د الله ﷻ د اطاعت زمانه وه.مسلمانان همیشه په کافرانوباندې غالب وواوهمیشه نې فتح حاصله کړې وه.دښمنان همیشه په خساره او تاوان کښې پاتې وو.او چه کله د بادشاهانوپه مینځ کښې فتنې او اختلافات زیات شو نو دښمنانوپه اطرافواوښارونوباندې نظراچول شروع کړو.داسلامی ملکونو طرفته ورورانډې شو او د دښمنانو ملکونو یو بل سره لاس امداد شروع کړو. بیا دیوبل په امداد د مسلمانانو په ملکونوباندې حملې اوکړې اود مسلمانانو په ډیروملکونوباندې نې قبضه اوکړه. خو چه کوم یواسلامی بادشاه د الله ﷻ د احکامو پابندی کړې، په الله ﷻ نې بهروسه کړې نو الله ﷻ هغه ته خامخا فتوحات ورکړی دی او بیللې شوی ملکونه نې بیا حاصل کړې دی. د الله ﷻ نه امید دې چه هغه به بیا مسلمانانو ته غلبه ورکړی او په ټوله دنیاکښې به د توحید کلمه اوچته شی. الله ﷻ خوفیاض او کریم دې.

| سُوْرَةٌ | مَآ اُنْزِلَتْ | وَاِذَا |
|---|---|---|
| یو نوې سورت | نازل کړې شي | او کله چې |
| او هرکله چې یو نوې سورة نازل شي | | |

فَمِنْهُمْ مَّنْ يَّقُوْلُ اَيُّكُمْ زَادَتْهُ

نو ځیني دهغوئ نه | هغه څوك دئ | چي وائي | کوم يو دي په تاسو کښي | چي زيات کړو هغه لره

نو بعضي په هغه خلقو کښي (دخندا په طور) دا وائي چي (اوښاني کنه) دي سورة د چا په ايمان کښي

هٰذِهٖۤ اِيْمَانًا ۚ فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا فَزَادَتْهُمْ

دي سورت | په لحاظ دايمان سره | نوهرچي دي هغه کسان | چي ايمان ني راوړي دي | نو زيات کړي دي هغوئ لره

زياتي راوستو | نو چا چي ايمان راوړي دي | دهغوئ پري يقيني طور ايمان زياتيږي

اِيْمَانًا وَّهُمْ يَسْتَبْشِرُوْنَ ۝ وَاَمَّا الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ

په لحاظ دايمان سره | اوهغوئ | خوشحاليږي | اوهر چي دي هغه کسان | چي په زړونو دهغوئ کښي

او هغوئ (په هرنوی سورة) خوشحاليږي | اود چا په زړونو کښي چي دنفاق (مرض) پروت وو

مَّرَضٌ فَزَادَتْهُمْ رِجْسًا اِلٰى رِجْسِهِمْ وَمَاتُوْا

مرض دي | نوزيات کړل هغوئ لره | په لحاظ دپليتئ سره | دپليتئ دهغوئ سره | اومره کيږي هغوئ

نو دهغوئ په پليتئ باندي (دي نوی سورة) يوه بله پليتی سوا کړه | اوه تر مرګه پوري

وَهُمْ كٰفِرُوْنَ ۝

اوحال داچي هغوئ | کافران وی |

په کفر کښي اخته پاتي شو |

قوله تعالى: فَزَادَتْهُمْ اِيْمَانًا

**د ایمان کمی بیشی مسئله باندي دامت اجماع ده:-** چه دا آیاتونه نازل شو نومنافقانو خبري شروع کړي چه بنه دد دي سورة په مسلمانانوکښي کوم نور ایمان او نوره زیاتی خوبی پیداکره. نو الله ﷻ فرمائي چه اودا نورایمان په مسلمانانوکښي دننه یقینا پیدا شوي دي اوهغوی په دي باندي خوشحاله هم دي. داآیت په هغه بزرګ ترین دلیلونوکښي دي چه ایمان کميږي هم او زیاتيږي هم.لکه څنګه چه د خلف او سلف علماؤ مذهب دي. بلکه داکثرو قول دا دي چه په دي عقیده باندي د امت اجماع ده اود بخاری شریف اول شرح کښي په دي مسئله باندي ژور او اوږد بحث شوي دي.خوچه دچا په زړونوکښي بیماری ده نوبه هغوی کښي خو دي آیت سره نورهم شك کښي زیاتوالي کيږي. لکه چه د الله ﷻ ارشاد دي ﴿وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْاٰنِ مَا هُوَ شِفَآءٌ﴾ یعنی قرآن پاك خو دمؤمنانو زړونوته شفا ورکوی.اود الله ﷻ قول دي﴿قُلْ هُوَ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا هُدًى وَّشِفَآءٌ ۗ وَالَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ فِيْٓ اٰذَانِهِمْ وَقْرٌ وَّهُوَ عَلَيْهِمْ عَمًى ۗ اُولٰٓئِكَ يُنَادَوْنَ مِنْ مَّكَانٍۢ بَعِيْدٍ﴾ یعنی د ایمان دخاوندانود پاره خو قرآن پاك هدایت او شفا ده.دکافرانو غوږونه خود دي قرآن پاك دطرف نه کانړه دي.دهغوی سترګي ړندي دي لکه چه هغوی دډیر لري نه رابللي شي چه هډو اوریدي نه شي. دا خومره د بدبختنی خبره ده چه کوم څیز د زړونودهدایت صلاحیت لری هغه د دوی د هلاکت اوضلالت ذریعه جوړ شي. لکه چه بیمار ته بنه خوراك هم ورکړي نو هم نقصان وررسوي.

اَوَلَا يَرَوْنَ اَنَّهُمْ يُفْتَنُوْنَ فِيْ كُلِّ

| ايا داخلق ګوری نه | چي بیشکه دوی | ازمانيلي کيږي | په هر

| ايا دي ته نه ګوري چي دوئ هرکال يو ځل يا دوه ځله

عَامٍ مَّرَّةً اَوْ مَرَّتَيْنِ ثُمَّ لَا يَتُوْبُوْنَ وَلَا هُمْ يَذَّكَّرُوْنَ۝

کال کښې ایو خل۱ | یا دوه خله | خو بیا هم | نه اوباسي توبه دوئ | او نه دوئ | نصیحت قبلوی

په یو افت کښې غورزولې شي | خو بیا هم توبه نه اوباسي | او نه تري عبرت اخلي

وَاِذَا مَآ اُنْزِلَتْ سُوْرَةٌ نَّظَرَ بَعْضُهُمْ اِلٰى بَعْضٍ ۭ هَلْ يَرٰىكُمْ

اوهرکله | چې نازل کړې شي ایو سورت | نو اوګوري | خیني ددوئ | خینو نورو ته | او وائي چې ایا ویني تاسو

او هرکله چې یو نوې سورة نازل شي | نو دوئ په سترګو سترګو کښې یو بل سره خبرې اوکړي

مِّنْ اَحَدٍ ثُمَّ انْصَرَفُوْا ۭ صَرَفَ اللّٰهُ قُلُوْبَهُمْ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَفْقَهُوْنَ۝

یو کس | بیا واپس لاړ شي | اړولي دي الله | زړونه ددوئ | خکه چې دوئ | هغه قوم دي | چې نۀ پوهیږي

چې څوک درته ګوري خو نه | بیا غلې شان اوځي | الله ﷻ ددوئ زړونه ګرزولي دي | خکه چې دوئ ناپوه خلق دي

قوله تعالى: أَوَلَا يَرَوْنَ أَنَّهُمْ يُفْتَنُوْنَ فِيْ كُلِّ عَامٍ

**دمنافقانو خصلتونه ددنیاوی آفتونو باوجود ایمان نه راوړي:-** دا منافقان دومره هم نه پوهیږي چه هغوی په کال کښې یو خل یا دوه خل اخته کولې شي اوبیا هم دخپلو وړاندینو ګناهونو نه منع کیږي اوپه دې باره کښې چه په هغوی کوم تیریدونکی دی دهغې نه اندیښنه نه کوي.مجاهد رحمه الله وائی چه منافقان به د اولړې اوقحط په فتنو کښې اخته کولې شو.قتاده رحمه الله وائی چه دجنګ مصیبت به دهغوی په سر راپریوتلو.صحابه کرامو رضي الله عنهم به ونیل چه مونږ به هرکال یو نه یو دروغ خبره اوریدله په کوم سره چه به اکثرخلق دهوکه کیدل.دحضرت انس رضي الله عنه روایت دې چه د سختنې زمانه به زیاتیدله د زړه تنګی او د حوصلې کوتاهی به زیاتیدله(۱) اوهر کال به د تیرشوی نه خراب راتلو(۲) دا پورتنې آیت دمنافقانو باره کښې دې چه کله به یو سورة په نبی کریم ﷺ نازلیدلو نو هغوی به یوبل ته کتل او ونیل به نی چه تاته خو چا کتلې نه وو. بیا به هغوی د حق نه مخ اړولو. په دنیا کښې د منافقانوداحال دې چه نه د حق خبرې مخې ته راخې اونه په هغې باندې پوهیږي.لکه چه د الله ﷻ فرمان دې(فما لهم عن التذكرة معرضين) اوبل قول دې (فمال الذين كفروا قبلك مهطعين) یعنی په دې خلقو څه شوی دی چه د حق خبرې نه دوه کوی لکه چه تختیدونکی خناور دی چه دزمرونه تختې. نیغ اوبه ارخ کښې پټیږي د حق نه د باطل طرف ته تیټیږي. الله ﷻ دهغوی زړونه ګرخولې دی چه نه د الله ﷻ خطاب باندې پوهیږي اونه د پوهیدلو کوشش کوي.

لَقَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ عَزِيْزٌ عَلَيْهِ مَا

په تحقیق سره | راغلي دي تاسو ته | یو رسول | دجنسه ستاسو نه | ګران دي | په هغه باندې | هغه کار

تاسو ته یو داسې رسول ﷺ راغلي دې چې ستاسو دخپل جنس نه دې | ستاسو نقصان په هغه

عَنِتُّمْ حَرِيْصٌ عَلَيْكُمْ بِالْمُؤْمِنِيْنَ رَءُوْفٌ

بد لیګی | ستاسو د ښیګړې ډیر خواهش مند دي | د مومنانو دپاره ډیر رحم دل

چې په تکلیف کښې اچوی تاسو | حرصناك دي | په تاسو باندې | په مؤمنانو باندې | مهربان دي

---

۱) ابن ماجه كتاب الفتن باب شدة الزمان :۴۰۳۹.

۲) بخاری:۷۰۶۸،ترمذی:كتاب الفتن باب منه لایاتی زمان الاالذی بعده شرمنه:۲۲۰۶، ابن ماجه:۴۰۳۹ واللفظ له.

| رَّحِيمٌ | فَإِن تَوَلَّوْا | فَقُلْ | حَسْبِيَ اللَّهُ | لَا إِلَٰهَ |
|---|---|---|---|---|
| رحم كونكي دي | انو كه مخ واړوي ستانه داخلق | نواووايه | كافي دي ماله الله | نشته دي لائق دعبادت |
| او مهربان دي | نو كه اوس هم دوئ مخ اوګرزولو | انو ورته اووايه | چي زما دپاره يوازي الله ﷻ بس دي | |

| إِلَّا هُوَ | عَلَيْهِ | تَوَكَّلْتُ | وَهُوَ | رَبُّ | الْعَرْشِ | الْعَظِيمِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مګر هغه دي | په هغه باندي | بروسه اوکړه ما | اوهغه | مالك دي | دعرش | لوئ |
| بي دهغه نه معبود نشته | په هغه مي توكل دي | اوهغه دلوئي عرش خاند دي | | | | |

**قوله تعالى:: لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِّنْ أَنفُسِكُمْ**

**درسول اللهﷺ دصفات حسنه ذکرجميل:-** په دې آيت کښي الله ﷻ په مسلمانانو باندې خپل احسان ښکاره کوی چه ستاسو د پاره هم ستاسو دجنس نه يورسول ليګلي دې. لکه چه ابراهيم ؑ دعا غوښتې وه.چه ﴿رَبَّنَا وَابْعَثْ فِيهِمْ رَسُولًا مِّنْهُمْ﴾ او ﴿لَقَدْ مَنَّ اللَّهُ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ﴾ او ﴿لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِّنْ أَنفُسِكُمْ﴾

**د نبی کريم نسب بالکل صفا دې::** جعفر ؓ بن ابی طالب دنجاشي بادشاه اومغيره ؓ دکسری سفيرته ونيلې ووچه الله ﷻ په مونږ کښي هم زمونږ د قوم نه يو رسول راليګلې دې. دچا دنسب نه چه مونږ واقف يو.دچا صفتونه چه مونږ پيژنو. دچا دپاسيدو کيناستو تګ راتګ صدق اوامانت ټولوخبرونه مونږ خبريو[1] دجاهليت د زمانې نه هم چه دچا په خاندان باندې څه داغ نه وو.حضورﷺ فرمائيلي چه زما ټولوخاندان د نکاح په بنياد راغلي دې اوچرته د وينو تويونکو د جاهليت د زمانې هم څه شك شبه نشته. دآدم ؑ نه واخله تر اوسه پورې زما پلارانونيکونوکښې يوکس هم بغير د نکاح نه نه دې پيدا شوې[2] دالله ﷻ ارشاد دې ﴿عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ﴾ يعنی په امت باندې لږتکليف هم په هغه باندې سخت ګران دې.

**د نبی کريم ﷺ شريعت بالکل واضح انتهائی اسان دې::** په حديث شريف کښي دی ﴿بعثت بالحنيفيه السمحة﴾ يعني آسان دين مې راوړلې راغلې يم[3] په صحيح حديث کښي دی چه دا شريعت ډيرآسان دې. الله ﷻ ډير آسان کړې پيداکړې[4] د هغوی ډير خواهش وی چه تاسو هدايت بيامومئی اودنياوی او اخروی ګټې حاصلې کړئی.صحابه ؓ فرمائيل چه حضورﷺ مونږته دومره عام معلومات راکړی دی چه فرض کړه يوه مرغئی هم په آسمان باندې الوزی د هغې باره کښي هم معلومات راکړی دی[5] حضورﷺ فرمائيلی دی چه جنت ته نيزدې کونکې اودوزخ نه لرې کونکې يوه وړه شان خبره هم داسې نشته کومه چه ماتاسو ته نه وی خودلې. د حضورﷺ فرمان دې الله ﷻ د هرناجائز اوحرام خيز متعلق په مکمل توګه معلوماتو باندې تاسو خبرکړی ئې. که تاسو د هغه بيان کړې شوی محرماتونه نه لرې کيږئ نوزه تاسو ته ښايم چه د دوزخ په شغلوکښي به داسې پريوځئ لکه پتنګ چه په شمع پريوځی.[6]

**د رسول کريم مثال::** دحضرت ابن عباس ؓ نه روايت دې چه حضورﷺ له دوه فرښتې راغلې کله چه حضورﷺ اوده وويو پښوطرف ته او بله دسر طرف ته. د پښو والا فرښتې د سر والا فرښتې ته وونيل

---

[1] احمد:١/٢٠١، ٢٠٢.
[2] مجمع الزوائد:٨/٢١٤، الدرالمنثور: ٣/٥٢٥.
[3] احمد:٦/١١٦وسنده حسن، مسندحميدی:٢٥٤مختصرًا.
[4] صحيح بخاری کتاب الايمان باب الدين يسر:٣٩.
[5] احمد:٥/١٥٢،مسندالطيالسی:٤٧٩، ابن حبان:٦٥، طبرانی:١٦٤٧ والزيادة عنده.
[6] احمد:١/٣٩٠وهوحسن، مسندابی يعلی:٥٢٨٨، مجمع الزوائد:٧/٢١٠.

چه د ده اود ده د امت متعلق حال یومثال بیان کړه. هغه فرمائی چه د ده مثال د امت سره داسې دې لکه چه خلق په سفریاندې یو اوچ کلك او ځنګل ته رسیدلې وی اود لارې خرچه وغیره ورسره هیڅ باقی نه وی پاتې شوې. نه وړاندې تلې شی اونه د واپس راګرځیدو څه صورت وی. په دې کښې مزیدارې جامې اغوستونکې یوسړې راشی او ورته وائی چه آیا زه تاسو ددې ځائ نه اوباسم او داسې باغونو ته مو بوځم کوم چه شنه او آباد وی نهرونه اوحوضونه وی آیا ماسره ځئ؟هغوی ډیر په خوشحالئ سره راځی شی هغه دوی بوځی چه ښه د میوو ډك وی او ښه خواره واره وی. بیا هغوی ته وائی آیا ما تاسو سره د خیرخواهئ حق ادا نه کړو اوآیاتاسو مې داسې شنو او آبادو ځایونوته بوتلې نه وئ؟ اوس واورئ وړاندې نورباغونه داسې دی چه ددې نه هم د سپرلونه ډك دی اود دې هم ډیر ښکلې حوضونه دی. راځئ چه تاسو اوس هلته بوځم. نوبعضو اووئیل چه تاسو خو وړاندې هم رښتیا وئیلی اواوس هم رښتیا وائې مونږ خو خامخا تاسو سره یو.او بعضو اووئیل چه مونږ خو هم داسې ښه یو. مونږ هم دلته بس یو وړاندې ته موضرورت نشته. یعنی دا هغه خلق دی چه دنیا پسې لیونی دی اود عاقبت خبر نه اخلی حالانکه د دې ځائ نه هلته ډیرې مزې او خوشحالئ دی.(۱)

**د رسول کریم ﷺ سخاوت:** :دحضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه یو اعرابی حضور ﷺ له راغلو اومالی امداد ئې اوغوښتلو. حضور ﷺ هغه ته څه ورکړل او وئې فرمائیل واخله ما ستا کار اوکړو اوتاسره مې احسان اوکړو. هغه وئیل چه نه هیڅ احسان دې نه دې کړې. دې اوریدو سره بعضې صحابه کرام رضی الله عنهم غصه شو او په هغه باندې د لاس اوچتولو اراده ئې اوکړه. نو حضور ﷺ په اشاره سره منع کړل. حضور ﷺ پاسیدو او خپل ځائ ته لاړو اواعرابی ئې راوغوښتلو هغه وئیل تا اوغوښتل اوما درکړه او خیر دې که تا هرڅه اووئیل بس اودې وئیل. ښه ده دا نورهم واخله. نوبیائې ورته اوفرمائیل چه اوس ما تاسره ښه سلوك اوکړو که نه. اعرابی اووئیل چه الله ﷻ دې تاسو له جزائې خیر درکړی. حضور ﷺ اوفرمائیل چه زما صحابه په تاباندې غصه شوی دی اوس ته د هغوی په وړاندې لاړ شه اودې وخت کښې چه تا ماته څه اووئیل د هغوی په وړاندې هم تصدیق اوکړه چه د هغوی د زړه نه هم غصه اوځی. هغه وئیل ښه. کله چه اعرابی راغلو نوحضور ﷺ اوفرمائیل دې راغلې ووسوال ئې اوکړوما ده له ورکړه خوده چه څه وئیلی وو هغه تاسوته معلوم دی مادې راوغوښتو اونورمې ورکړه اوس دې راضی دې.حضور ﷺ اوفرمائیل ولې اې اعرابی داخبره ټیك ده که نه.اعرابی اووئیل اوالله ﷻ دې تاسو له جزائې خیر درکړی.

حضور ﷺ فرمائی چه زما او دباندچې مثال داسې دې لکه چه د چاوښه وی اوهغه اورانه شوې وی خلق هغې پسې منډې وهی نو نوره هم ورانه شی.نوداوښې مالك وئیل چه تاسوددې خمولوکارماته پرېږدئ.زه ددې دکار نه ښه خبریم زه به دا نرمه کړم. بیا هغه واښه راواخسته او هغه راغله.په هغې ئې واښه اوخوړل او وئې نیوله. اوپه هغې باندې کجاوه واچوله. که ده د بدتمیزئ په خبره زه هم ستاسوپه شان غصه شوې ووم نوهغه به دوزخې شوې وو(۲)خودا حدیث ضعیف دې.والله اعلم بالصواب.

د الله ﷻ ارشاد دې﴿ بِالْمُؤْمِنِيْنَ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ﴾ په شان ددې ارشاد دې چې ﴿وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ - لِمَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ او د الله ﷻ ارشاد دې چې ﴿فَاِنْ تَوَلَّوْا﴾ په دې آیت مبارك کښې هم دغه حکم دې. چه کوم عظیم شریعت تاسو راوړې دې که دا خلق د هغې نه مخ واړوی نو ورته وایه الله ﷻ ماله کافی دې زه په تاسو نه په هغه باندې بهروسه کوم. الله ﷻ د هرڅیزمالك دې خالق دې او هغه د عرش عظیم رب دې. د هغه عظیم عرش د مخلوقاتو چت دې. د زمکې او آسمان ټول مخلوق د هغه د عرش لاندې دی. ټول مخلوق د هغه د قدرت په قبضه کښې دې. د هغه علم په هرڅیز باندې محیط دې.

---

(۱) احمد: ۱/۲۶۷.

(۲) البزار: ۲۴۷۶،مجمع الزوائد: ۹/۱۲.

د هغې حضراتو په نيزدا د قران پاک اخری ايت دي::ابی بن کعب رضی الله عنه فرمائي چه د قرآن پاك آخرى آيت ﴿لَقَدْ جَآءَكُمْ رَسُولٌ مِّنْ أَنفُسِكُمْ﴾ والا آيت دی[1] اوداچه د قرآن ټول آياتونه اوسورتونه په خلافت ابوبکر کښې قرآن د مرتبې په لحاظ سره راجمع کړې شوي. خلقو به ليکلواو ابی بن کعب رضی الله عنه به په خلقو ليکلو. کله چه د سورة براءة دې آيت ته اورسيدو﴿ ثُمَّ انصَرَفُوا ۚ صَرَفَ اللَّهُ قُلُوبَهُم ﴾نودا گمان ئې اوکړو چه دا د قرآن آخرى آيت دي نوابى بن كعب رضی الله عنه هغوی ته اوونيل رسول الله ﷺ د دې نه پس ماته دا دوه آياتونه اوروليي وو. ﴿لَقَدْ جَآءَكُمْ﴾ آخر سورت پورې او ونې وئيل چه دا د قرآن آخرى آيت دې او هم په دې باندې ختم دې د کوم نه چه شروع شوې وه. يعني د هغه الله ﷻ په نوم د چا نه چه بغير بل اله نشته. هم د دې متعلق د الله ﷻ قول دې. ﴿وَمَآ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ مِن رَّسُولٍ إِلَّا نُوحِىٓ إِلَيْهِ أَنَّهُۥ لَآ إِلَٰهَ إِلَّآ أَنَا۠ فَٱعْبُدُونِ﴾ ([2])عبدالله بن زبیر رضی الله عنه روايت دې چه حضرت عمر رضی الله عنه ته حارث بن خزيمه رضی الله عنه دا دوه آياتونه پيش کړې وو کوم چه د سورة براءة آخر کښې دی. حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائيل چه د دې وحی بل شهادت څوك ورکوی؟ حضرت حارث رضی الله عنه جواب ورکړو چه ماته خو پته نشته چه بل چاته معلومه ده خود الله ﷻ قسم ما دا پخپله د رسول الله ﷺ نه اوريدلی دې. هغه اوونيل چه که دا کم نه کم درې آياتونه وې نو ما به دې له د بل سورت نوم ورکړې وو.ته دا په قرآن کريم کښې چرته کيږده. نودائی د سورت براءة په آخر کښې کيخودل([3]) داخبره وړاندې تيره شوې ده چه حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه ته مشوره ورکړې وه چه د قرآن پاك ټول آياتونه راجمع کول ډير قرين مصلحت دی. نو حضرت صديق اکبر رضی الله عنه حضرت زيدبن ثابت رضی الله عنه ته د قرآن پاك راجمع کولو حکم اوکړو. هغه به قرآن راجمع کولو اوپه ترتيب کولو به ئې او حضرت عمر رضی الله عنه به هم هلته موجود وو.په صحيح حديث کښې دی چه زيد رضی الله عنه اووئيل چه د سورة براءة آخری حصه ما حضرت خزيمه بن ثابت رضی الله عنه ياابوخزيمه رضی الله عنه سره ليدلی وه([4])اودا هم مونږ بيان کړل چه دصحابه کرامو رضی الله عنهم يوې ډلې ددې ذکرنبی کريم ﷺ سره اوکړه لکه څنگه چه خزيمه بن ثابت رضی الله عنه کړې وه.والله اعلم.

ابوالدرداء رضی الله عنه بيان کوی چه څوك سحر ماښام اووه ځل دا اولولی ﴿حَسْبِيَ ٱللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۖ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ ۖ وَهُوَ رَبُّ ٱلْعَرْشِ ٱلْعَظِيمِ﴾نو الله ﷻ به د هغه ټول کارونه جوړکړی او چه کومه اراده کوی هغه به پوره کوی([5]) په يو روايت کښې دی چه دزړه په صدق سره ئې لوستلې وی اوکه نه. خود دې جملې زياتوالې غريب دې. په يو مرفوع روايت کښې هم داسې ذکر دی خودا هم د منلو قابل نه دې. والله اعلم.

﴿الحمدلله﴾ د سورة براءت تفسير ختم شو.

---

[1] احمد:۱۱۷/۵زوائدعبدالله، مجمع الزوائد:۳۷/۷.

[2] احمد:۱۳٤/۵زوائد عبدالله بن احمدبن حنبل وسنده ضعيف.

[3] احمد:۱۹۹/۱.

[4] صحيح بخاری کتاب التفسير سورة براءة باب قوله ﴿لقدجاءكم رسول من أنفسكم عزيز عليه ما عنتم...﴾:٤۶۷۹.

[5] ابوداود کتاب الادب باب مايقول اذااصبح:۵۰۸۱وسنده حسن.

**(تفسير سورة يونس (مكيه))**

| اياوتونه | سورة يونس مكية وهي مائة وتسع ايات واحد عشر ركوعا | ركوعګاني |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۱۰۹ | شروع كوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم كونكي دي | ① |

| الٓرٰ | تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ | الْحَكِيْمِ ① | اَكَانَ | لِلنَّاسِ | عَجَبًا | اَنْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ال ر \| دا \| ايتونه دكتاب دى \| چي دحكمت نه ډك دي \| ايا دي \| خلقو ته \| تعجب شوه \| داخبره چي | | | | | | |
| الف لام را \| دا داسي كتاب ايتونه دي \| چي د حكمت نه ډک دي \| ايا دا خلق دي خبري ته تعجب كوي | | | | | | |

| اَوْحَيْنَآ | اِلٰى رَجُلٍ | مِّنْهُمْ | اَنْ | اَنْذِرِ النَّاسَ | وَبَشِّرِ | الَّذِيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وحى اوكره مونږه \| يو سړي ته \| ددوئ نه \| چي \| اوېروه خلق \| اوزيري وركړه \| هغه كسانو ته | | | | | | |
| چي مونږ په دوئ كښي يو سړي (ﷺ) ته وحي اوليږله \| (اودا مو ورته اووئيل) چي خلق (د الله ﷻ د عذاب) ويروه | | | | | | |

| اٰمَنُوْٓا | اَنَّ | لَهُمْ | قَدَمَ | صِدْقٍ | عِنْدَ رَبِّهِمْ ؕ |
|---|---|---|---|---|---|
| چي ايمان ئې راوړي دي \| چي بيشكه \| شته دوئ لره \| مرتبه لويه \| رينستني \| په نز درب ددوئ | | | | | |
| او چي څوک ايمان راوړي هغوئ ته زيري وركوه \| چي هغوئ دپاره خپل پروردګار سره اوچته مرتبه ده | | | | | |

| قَالَ الْكٰفِرُوْنَ | اِنَّ هٰذَا | لَسٰحِرٌ | مُّبِيْنٌ ② |
|---|---|---|---|
| نوونيل كافرانو \| بيشكه چي داسړي \| خامخاجادوګردي \| ښكاره \| | | | |
| (او په دي خبره) كافروانى چي داسړي خو ښكاره جادوګر دي \| | | | |

قوله تعالى: اِلٰى رَجُلٍ مِّنْهُمْ

**ټول انبياءعليهم السلام دجنس بشر نه وو:**- حروف مقطعات دسورتونو په شروع كښي وى په دې باندې اول كلام تيرشوي دي.اود سورة بقرې په شروع كښي په دې باندې پوره بحث تيرشوېدي.د ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې (الٓرٰ) نه اناالله ارى مراد دې. يعنى زه الله يم او ټول هرڅه وينم. ضحاك رحمه الله هم داسې وينا كړې ده.دا د قرآن محكم او مبين آياتونه دى. دمجاهد رحمه الله هم دا قول دې. حضرت حسن بصرى رحمه الله فرمائى چه دكتاب نه مراد توراة او زبوردې. دقتاده رحمه الله خيال دې كتاب نه مراد هغه ټول الهامي كتابونه دى كوم چه د قرآن نه وړاندې وو. خوداً خيال لايعنى غوندې دې.د الله ﷻ ارشاد دې (اَكَانَ لِلنَّاسِ عَجَبًا) كافران چه دا كوم تعجب كوى په دې باندې الله ﷻ فرمائى چه په دې كښې د تعجب څه خبره ده. چه پيغمبر ﷺ د بشر دجنس نه دې. لكه څنګه چه الله ﷻ د قرون ماضيه نه د كافرانو قول نقل كړې دې(اَبَشَرٌ يَّهْدُوْنَنَا) يعنى څوك بشر به مونږ ته هدايت اوكړى؟ دلته د كافرانو مراد هود عليه السلام او صالح عليه السلام وو. هود عليه السلام او صالح عليه السلام وائى په دې كښې د حيرانتياڅه خبره ده.كه هم په تاسو كښې په چا باندې وحى نازل شوه اوهغه ئې پيغمبر جوړكړو. نود قريشو د كافرانو باره كښې الله ﷻ فرمائى چه كافران وائى محمد ﷺ خو د ټولو خدايانونه يو خدائې جوړكړو.اودا ډيره عجيبه خبره ده. دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې چه كله الله ﷻ محمد ﷺ خپل رسول جوړكړو او راوې ليكلو نو عربوانكار اوكړو او وئى وئيل چه د الله ﷻ شان خود دې نه ډير لوئ دې چه د محمد ﷺ غوندې سړې دې پيغمبر جوړكړى راوئى ليكى. نو الله ﷻ اوفرمائيل چه په دې كښې خود حيرانتياڅه خبره نشته (اَنَّ لَهُمْ قَدَمَ صِدْقٍ) باره كښې اختلاف دې. ابن عباس رضي الله عنه فرمائى چه د قدم صدق نه دا مراد دې چه هم په رومبى

بیان باندې تصدیق کول او سعادت حاصلول دي اود خپلو ښو اعمالو ښه اجر اخستل دي اودابالکل د الله ﷻ د دې قول په شان دی چه ﴿لِّيُنذِرَ بَأْسًا شَدِيدًا﴾ دې دپاره چه هغوی دجنګ او سخت عذاب نه اووېروي ﴿ قَدَمَ صِدْقٍ ﴾ باره کښې مجاهد رحمه الله وائی چه اعمال صالح مراددی. لکه صلوٰة صوم صدقه تسبیح او شفاعت د پیغمبر ﷺ. قتاده رحمه الله سلف صدق مراد اخلی. ابن جریری رحمه الله د مجاهد رحمه الله هم خیال کولو سره اعمال صالحه مراد اخستې دی. لکه چه ونیلې شي ﴿له قدم صدق فى الاسلام﴾ د حسان ﷺ شعردې.

﴿لنا القدم العليا اليك وخلفنا﴾ ﴿لاولنا فى طاعة الله تابع﴾

زمونږ اعمال اوزمونږ طور طریقې تاسره ربښتونی دی اودالله ﷻ په تابعدارئی کښې زمونږ اخلاف د خپلو أسلاف تابعدار دی. الله ﷻ فرمائی چه د دې باوجود چه مونږ هم دهغوی نه یو سړي بشیراونذیر جوړکړواومولیګلونو بیا هم دا کافران وائی چه ته خو ښکاره جادوګرئې. دا کافران بالکل دروغژن دی.

| اِنَّ رَبَّكُمُ اللّٰهُ الَّذِیْ |
|---|
| بیشکه رب ستاسو \| هغه الله دی |
| بیشکه ستاسو پروردګار صرف یو الله دی |
| خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ فِیْ سِتَّةِ اَیَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰی عَلَی الْعَرْشِ |
| چې پیدا ئې کړل آسمانونه \| اوزمکه \| په شپږو \| ورځو کښې \| بیا \| برابرشو هغه \| په عرش باندې |
| چې آسمانونه او زمکې ئې په شپږو ورځو کښې پیدا کړل \| بیا په عرش باندې برابر شو |
| یُدَبِّرُ الْاَمْرَ ط مَا مِنْ شَفِیْعٍ اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ اِذْنِهٖ ط |
| تدبیر کوی \| دټولو کارونو \| نشته \| هیڅوک \| شفاعت کونکې \| مګر \| روستو \| داجازت دهغه نه |
| هغه د هر کار تدبیر کوی \| هیڅوک (دهیچا) سفارش نشی کولې اخود هغه داجازت نه پس |
| ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ فَاعْبُدُوْهُ ط اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ ۝ |
| هم داالله دی ستاسو \| چې رب ستاسو دی \| نو عبادت کوئ هم دهغه \| آیا نو نصیحت نه قبلوئ تاسو |
| هم دغه الله ستاسو پروردګار دی \| نو دهغه عبادت کوئی \| آیا تاسو (اوس هم) نصیحت نه قبلوئ |

قوله تعالى: ثُمَّ اسْتَوٰی عَلَی الْعَرْشِ یُدَبِّرُ الْاَمْرَ ط

عرش عظیم او د الله ﷻ علم:- د الله ﷻ عزوجل ارشاد دې چه الله ﷻ دټول عالم پروردګا دې. هغه زمکې او آسمانونه په شپږو ورځوکښې پیدا کړل. ونیلی شي چه هغه ورځې هم زمونږ د ورځو په شان دې. او دا هم ونیلی شوی دی چه د زرو کالو یوه ورځ وه. د کومې بیان چه به وړاندې راځی. بیا هغه په عرش عظیم باندې د خپل شان مطابق ناست دې. او عرش په ټولو مخلوقاتوکښې د ټولونه لوئ مخلوق دې. هغه دسرو یاقوتونه جوړدې. یا داچه هغه هم د الله ﷻ یونوردې. الله ﷻ د ټولومخلوقاتو مدبر سرپرست اوکفیل دې. د هغه دپاللونه د زمکې او آسمان یوه ذره هم بچ یا خلاصه نه ده. یوه توجو هغه د بل طرف د توجونه نه شی بندولې. خکه چه یوه خبره هم په غلطه توګه باقی نه شی پاتې کیدې. غرونه سمندرونه آبادئی اوخنګلونه چرته هم یو لوئ یا وړوکې تدبیردخیال کولونه نه شی بندولې. په دنیا کښې یو سا اخستونکې داسې نشته د کوم رزق چه د الله ﷻ په ذمه نه وی. که یوخیز هم حرکت کوی یا یوه پانړه هم راغورزیږی نو الله ﷻ د هغې علم لری. د زمکې په تیاروکښې یوه ذره داسې نشته

اونه داسې اوچه لمده داسې شته چه د هغه په لوح محفوظ یعنی کتاب علم کښې نه وی. په کوم وخت چه دا آیت نازل شو ﴿ إِنَّ رَبَّكُمُ اللَّهُ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ ﴾ مسلمانانو ته یولوئ لښکر راتلونکې ښکاریدو چه بدو خلق دی. خلقو تپوس اوکړو چه تاسو څوك نې؟ نو ونیل مونږ پیریان یو ددې آیت په وجه مونږ د ښارنه اوځو.اود الله ﷻ ارشاد دې ﴿ مَا مِن شَفِيعٍ إِلَّا مِن بَعْدِ إِذْنِهِ ﴾ یعنی څوك به د هغه د اجازت نه بغیر د چا شفاعت نه شی کولې.دا قول دالله ﷻ د دې قول مطابق دې ﴿مَن ذَا الَّذِي يَشْفَعُ عِندَهُ إِلَّا بِإِذْنِهِ﴾ او﴿ ذَٰلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْ فَاعْبُدُوهُ ﴾ یعنی دې خلقو د عبادت د پاره هم د الله ﷻ ذات خالص کړې دې. اوای مشرکانو! تاسو عبادت کښې دالله ﷻ سره نور خدایان هم شریك کونې. حالانکه تاسو ته ښه معلومه ده چه پیداکونکې الله هم یو دې. د هغه نه علاوه د بل چا عبادت نه شې کولې. پخپله الله ﷻ فرمائیلی دی که ته د هغوی نه تپوس اوکړې چه تاسو چا پیدا کړی نې؟ نو اعتراف به کوی چه الله ﷻ. اوکه تپوس اوکړې چه د دې عرش عظیم او اووه آسمانونو اله څوك دې؟ نو ډیر زر به وائی الله ﷻ دې. نو دوی نه تپوس اوکړه چه د دغه الله ﷻ نه بیا ولې نه ویریږئ او شرك ولې کونې؟

| إِلَيْهِ | مَرْجِعُكُمْ | جَمِيعًا | وَعْدَ اللَّهِ | حَقًّا | إِنَّهُ | يَبْدَأُ | الْخَلْقَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هم هغه ته | واپسی ده ستاسو | دټولو | وعده ده دالله | حقه | ابیشکه هغه | اول شروع کوی | دپیداوښت |
| هغه ته ستاسو د ټولو واپس کیدل دی | | | دا دالله ﷻ رېښتونې وعده ده | | | هغه مخلوق اول پیدا کړې دې | |
| ثُمَّ | يُعِيدُهُ | لِيَجْزِيَ | الَّذِينَ | آمَنُوا | | | |
| بیا | به نې دوباره پیدا کوی هم هغه | دپاره ددې چې بدله ورکړی | هغه کسانولره | چې ایمان نې راوړو | | | |
| اوبیا به نې هم دوباره ژوندې کوی | | چې هغې کسانو ته په انصاف بدله ورکړی | | چې ایمان نې راوړې | | | |
| وَعَمِلُوا | الصَّالِحَاتِ | بِالْقِسْطِ | وَالَّذِينَ | كَفَرُوا | لَهُمْ | | |
| اوعملونه نې اوکړل | نیك | په انصاف سره | اوهغه کسان | چې دکفر په لاره لاړل | اوی به دهغوی دپاره | | |
| دې اونیك کارونه نې کړی دی | | | او چا چې کفر غوره کړې دې | | (نو) د هغوئ د څکلو دپاره | | |
| شَرَابٌ | مِّنْ حَمِيمٍ | وَعَذَابٌ | أَلِيمٌ | بِمَا | كَانُوا | يَكْفُرُونَ | |
| څکل | دګرمواوبونه | اوعذاب | دردناك | په سبب دهغې | چې وو هغوی | چې کفر به نې کوو | |
| ویشیدلې اوبه دی | | او دردناك عذاب مقرر دې | | دا څکه چې کفر به نې کولو الله | | | |

قوله تعالی:: لَهُمْ شَرَابٌ مِّنْ حَمِيمٍ

**د کفرسزا دردناك عذاب.-** الله ﷻ خبرورکوی چه د قیامت په ورځ به د مخلوق رجوع هم دهغه طرف ته وی. هرسا لرونکی کوم چه هغه پیدا کړې دې خامخابه د هغه طرف ته واپس کولې شی. څکه چه څنګه نی اول پیداکړی وو دغه شان نی بیاهم پیدا کولې شی. اود نیکو اعمال بدله به پوره ورکوی او کافرانو ته به د هغوی دکفر په سبب د قیامت په ورځ مختلف عذابونه ورکوی. لکه باد سموم او آب تمیم اود دې قسم نور هم. دا کافران د دوزخ غوندې خیز دروغ ګنړی. هم په دې کښې به د هغوی شپه ورځ وی. اود ویلی کړې تانبې غوندې ګرمې اوبه به د څکلود پاره ملاویږی.

| هُوَ الَّذِيْ | جَعَلَ | الشَّمْسَ | ضِيَآءً | وَّالْقَمَرَ | نُوْرًا | وَّقَدَّرَهٗ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| هغه هغه ذات دی | اچي جوړ ئي کړو | نمر | خلیدونکي | اوسپوږمئ | اروښانه | اومقرر ئي کړل هغي لره |

الله ﷻ هغه ذات دی اچي نمر ئي پرقیدونکي جوړ کړي دي او سپوږمئ ئي خلنده جوړه کړي ده او دا ئي سمه

| مَنَازِلَ | لِتَعْلَمُوْا | عَدَدَ السِّنِيْنَ | وَالْحِسَابَ | مَا خَلَقَ | اللّٰهُ |
|---|---|---|---|---|---|
| خابونه دراختلو | دپاره ددې چي تاسو معلوم کړئ | شمارا دکلونو | اودحساب | نه دی پیدا کړی | الله |

په حساب منزلونه مقرر کړي دی | چي تاسو تري نه دکلونو په شمیرا و (دوخت) په حساب پوهه شئ

| ذٰلِكَ | اِلَّا | بِالْحَقِّ | يُفَصِّلُ | الْاٰيٰتِ | لِقَوْمٍ | يَّعْلَمُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دا هر څه | مګر | په حقه سره | هغه واضحه بیانوی | آیتونه | دپاره دهغه خلقو | چي پوهیږي |

الله ﷻ دا ټول څیزونه (دلوبو دپاره نه بلکه) په مطلب پیدا کړي دي هغه پوهانو خلقو ته خپلې نښې په تفصیل سره بیانوي

قوله تعالی: هُوَ الَّذِيْ جَعَلَ الشَّمْسَ ضِيَآءً

**سپوږمئ نمرستوري شپه ورځ وغیره د الله ﷻ دقدرت نښې دي:-** الله ﷻ د دې خبرې خبر ورکوی. چه الله ﷻ دخپل قدرت په کمال سره او دسلطنت په عظمت دلالت کونکي څنګه څنګه نښې پیدا کړی دی. د نمر دککوړی نه وتونکي شغلې هغه ستاسو دپاره رڼا جوړه کړه اودسپوږمئ رڼائي ستاسو د پاره نورجوړکړو.د نمر رڼا دجدا قسم ده اودسپوږمئ رڼا بل قسم ده.رڼا هم یوه ده خو بیا هم په دواړو کښې دومره فرق دې. چه یوه رڼا په بله باندې خیرنیږی نه. که په ورځ کښې د نمر بادشاهی ده نو په شپه کښې دسپوږمئ. دواړه آسمانی اجرام دی خود نمرمنازل ئی نه دی مقررکړی او د سپوږمئ منازل ئی مقررکړی دی. په اول تاریخ چه میاشته راوخی نو ډیره وړه وی بیا د هغې رڼا هم زیاتیږی او دهغې ککوړې هم غټې کیږی تردې چه پوره شي. ګول دائره شي. دې نه پس بیا کمیږی اوپوره یوه میاشت پس بیاپخپل اول حالت باندې راشی.لکه چه الله ﷻ فرمایی ﴿وَالْقَمَرَ قَدَّرْنٰهُ مَنَازِلَ حَتّٰى عَادَ كَالْعُرْجُوْنِ الْقَدِيْمِ﴾ د سپوږمئ د پاره مونږ د غټیدو اوکمیدو منازل مقررکړی دی چه هغه په کمیدو کمیدو د زوړ اوچ ښاخ غوندې شي. نه خو نمر سپوږمئ رانیسی اونه شپه د ورځې نه وړاندې کیږی. هر یو په خپل خپل مدار کښې په خپله خپله ضابطه او قانون لاندې چکر وهی.

**الله ﷻ دا نمراوسپوږمئ وغیره عبث نه دی پیدا کړی::** اود الله ﷻ قول دې ﴿وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ حُسْبَانًا﴾ دنمر اوسپوږمئ خپل خپل حساب دې.پدې آیت مبارك کښې خودلې شوی دی چه دنمر په ذریعه ورځ پیژندلې شی اود سپوږمئ په ګردش سره د میاشتو اوکالونوحساب لګولې شي. الله ﷻ دا عبث نه دی پیداکړی.بلکه په عالم په پیدائش کښې یو عظیم حکمت پټ دې.اود هغه په قدرت باندې حجة البالغه ده لکه چه فرمائی ﴿وَمَا خَلَقْنَا السَّمَآءَ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا بَاطِلًا﴾ یعنی مونږ آسمان او زمکه او په دې کښې چه څه دی په باطله توګه نه دی پیداکړی. دا د کافرانو ګمان دې او په کافرانوبه د دوزخ هلاکت وی. اود الله ﷻ ارشاد دې ﴿اَفَحَسِبْتُمْ اَنَّمَا خَلَقْنٰكُمْ عَبَثًا وَّاَنَّكُمْ اِلَيْنَا لَا تُرْجَعُوْنَ﴾ آیا تاسو دا ګنړنې چه مونږ تاسو عبث پیداکړی ئي. عبث پیداکړې شوې او عبث مره شوې اوبیابه زمونږ طرف ته واپس کولې نه شئ. د الله ﷻ ذات ډیر لوئی دې هغه الله واحد رب د عرش کریم.

د آیاتونومطلب دا دې چه مونږ حجت او دلیلونه ښکاره ښکاره بیانوو دې د پاره چه پوهیدونکي پوهه شي. د شپې ورځې د اختلاف مطلب دا دې چه ورځ خې نو شپه راخي او چه شپه خي نو ورځ راخي. په یوبل باندې غالب راتلو سره قرار نه کوی. لکه چه د الله ﷻ ارشاد دې ﴿يُغْشِى الَّيْلَ النَّهَارَ يَطْلُبُهٗ حَثِيْثًا﴾ شپه

په ورخ خوریږی او ورخ په شپه خوریږی خو څه مجال چه نمر سپوږمئی سره اوجنګیږی. د الله ﷻ ارشاد دی (فَالِقُ الْإِصْبَاحِ ۚ وَجَعَلَ اللَّيْلَ سَكَنًا) سحر راوڅی او شپه په سکون باندې تیریږی. الله ﷻ په زمکه او آسمان کښې چه څه پیداکړی دی هغه د دې خبرې نښې دی چه د هغه قدرت څومره عظیم دی.لکه چه د الله ﷻ ارشاد دی (وَكَأَيِّن مِّنْ آيَةٍ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ)زمکه اوآسمان د الله ﷻ د څومره نښونه ډک دی (قُلِ انظُرُوا مَاذَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۚ وَمَا تُغْنِي الْآيَاتُ وَالنُّذُرُ عَن قَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُونَ) غوراوکړئی چه په زمکه او آسمان کښې کومې نښې نشته اوکافران متنبه کونکی کوم کوم دلائل نشته.د الله ﷻ ارشاددې آیاهغوی په آسمان او زمکه کښې اخوادیخواوړاتدې روستونظرنه کوی.دانخښې خودعقلمندودپاره دی اودالله ﷻدنیاواو عذابونو نه د بچ کیدونکود پاره دی.

| فِي السَّمَاوَاتِ | خَلَقَ اللَّهُ | وَمَا | وَالنَّهَارِ | اللَّيْلِ | إِنَّ فِي اخْتِلَافِ |
|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه په بدلیدوکښې\|دشپې\|اودورځې\| اوپه هرهغه څیزونوکښې\|چې پیداکړی دی الله\|په آسمانونوکښې | | | | | |
| بیشکه دشپې او ورځې په بدلون کښې او الله ﷻ چې په آسمانونو او زمکه کښې څه پیدا کړی دی( | | | | | |
| الَّذِينَ | إِنَّ | يَتَّقُونَ ۝ | لِقَوْمٍ | لَآيَاتٍ | وَالْأَرْضِ |
| اوپه زمکه کښې\|خامخا نښې دی\|دپاره دهغه قوم\|چې خان ساتي دغلطي لاري نه\|بیشکه\| هغه کسان | | | | | |
| په دې ټولو کښې) دهغې خلقودپاره نښې دی \| چې د الله ﷻ نه ویریږی \| بیشکه خوک چې زمونږ | | | | | |
| بِهَا | وَاطْمَأَنُّوا | بِالْحَيَاةِ الدُّنْيَا | وَرَضُوا | لِقَاءَنَا | لَا يَرْجُونَ |
| چې امیدنه لري\| دملاقات زمونږه\| اوراضي شوی دی\| په ژوند د دنیا\| اومطمئن شوی دی\| په هغې | | | | | |
| سره دملاقات امید نه ساتي \|اوددنیا په ژوند رضا شوی دی \|او په هغې پورې ئې زړونه لګولي دی | | | | | |
| مَأْوَاهُمُ | أُولَٰئِكَ | غَافِلُونَ ۝ | عَنْ آيَاتِنَا | هُمْ | وَالَّذِينَ |
| اوهغه کسان\| چې هغوی\| دآیتونو زمونږ نه \| غافله دی\| دغه کسان چې دی\| آخری ځائې دهغوی | | | | | |
| او خوک چې زمونږ د نښونه بیخي غافله دی \| .هم دغه خلق دی چې ټکاونړه ئې (د دوزخ | | | | | |
| | | يَكْسِبُونَ ۝ | كَانُوا | بِمَا | النَّارُ |
| وورد دی\|په سبب دهغې بدوکارونو\|چې ووهغوی\|چې کول به ئې \| | | | | | |
| اور دی \| د دوی د خرابو عملونو په سبب \| | | | | | |

قوله تعالى: وَاطْمَأَنُّوا بِهَا

**په دنیاوی ژوندون باندې دعاشقانوکافرانو انجام:**-چه کوم بدبخت د قیامت په ورځ د الله ﷻ دملاقات نه انکار کوی اود الله ﷻ د ملاقات ورته لږشان هم یقین نشته او صرف د دنیاوی ژوند طالبان دی. او هم په دې دنیاباندې د هغوی نقوش خوشحاله دی. په دې آیت کښې دا هم د هغوی متعلق خبرورکړې شوې دې. حسن بصری رحمه الله فرمائی چه د الله ﷻ قسم دې کافرانوخونه د دنیا ژوند له څه زینت ورکړو او نه ئې دامرتفع کړل اوبیا د دې ژوند نه راضی هم شو هغوی دالله ﷻ دکونیه آیاتونونه ډیر غافل دی. لږشان هم په خپل ژوند باندې غور او فکر نه کوی. د قیامت په ورځ د هغوی ځای دوزخ دې. اودا د هغوی د دنیاوی اعمالو صحیح بدله ده څکه چه د الله ﷻ نه اود رسول الله ﷺ نه اود ورځې د قیامت نه هغوی کوم انکار کړې دې اوکوم ګناهونه او جرمونه ئې چه کړی دی د هغې تقاضا هم دغه ده.

| |
|---|
| اِنَّ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا |
| بیشکه هغه کسان\| چې ایمان ئې راوړو |
| بیشکه چاچې ایمان راوړې دې \|او نیک کارونه کوي |
| وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ یَهْدِیْهِمْ رَبُّهُمْ بِاِیْمَانِهِمْ تَجْرِیْ |
| او کول ئې نیک کارونه\| اوبه ښائي هغوئ ته نیغه لار\| رب دهغوئ\| په سبب دایمان دهغوئ\| بهیږی به |
| هغوئ به خپل رب د ایمان په برکت سره (داسې ځایونه ته) اورسوي اچې لاندې به ترې ولې |
| مِنْ تَحْتِهِمُ الْاَنْهٰرُ فِیْ جَنّٰتِ النَّعِیْمِ دَعْوٰىهُمْ فِیْهَا سُبْحٰنَكَ |
| لاندې دهغوئ نه\| نهرونه \| په جنتونوکښې\| ډك دنعمتونو\| ویناد هغوئ به\| په هغې کښې\| پاکي ده تالره |
| بهیږی \| د عیش عشرت په باغونو کښې به وی \| هلته به هغوئ وائي چې ائي الله ﷻ ته پاک ئې \|او هلته به |
| اللّٰهُمَّ وَتَحِیَّتُهُمْ فِیْهَا سَلٰمٌ وَاٰخِرُ دَعْوٰىهُمْ |
| ائ خدایا \| او دعا دهغوئ به \| په هغې کښې \| سلام (سلامتیا) وی \| اوخاتمه \| دوینا دهغوئ به داوی |
| دهغوئ (یو بل) سره دعا دا وائي اچې سلامت اوسیږئ \|اودهغوئ روستئ وینا به همیشه دا وی اچې |
| اَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ |
| چې ثنا ده \| الله لره \| چې پاکونکې دټولو مخلوقاتو دې \| |
| ټول تعریفونه الله ﷻ لره دی اچې پالونکې د ټولو مخلوقاتو دې \| |

**قوله تعالی::وَتَحِیَّتُهُمْ فِیْهَا سَلٰمٌ**

**جنت د سلامتیا کوردې**:دلته دهغه نیك بختو خبرورکولې شي چه ایمان ئی راوړې دې اودپیغمبرانو تصدیق ئی کړې.حکم منل ئی کړی نیك عملونه ئی کړی اوداوعده اوکړې شوه چه د هغوی په نیکو اعمالوبه هغوی ته هدایت کولې شي. دلته ﴿بِاِیْمَانِهِمْ﴾ (ب) سببیه کیدې شي یعنی په دنیاکښې د هغوی د ایمان راوړلو سبب د قیامت په ورځ په صراط مستقیم باندې به الله ﷻ هغوی برابر او قایم اوساتي. تردې چه هغه به دا پوره کړی اوجنت ته به ئی اورسوی. او داهم احتمال دې چه (ب) د استعانت وی لکه چه مجاهد رحمه الله فرمائی چه هغوی سره به یو نوروی اود هغې په امداد به هغوی په لار خي.

**په قیامت کښې به نیك اوبدعمل متشکل کیږی**::اوابن جریر رحمه الله وائی چه دهغوی اعمال به د یو ښکلې وجود اوخوشبوداري هوا په شکل کښې وی اوچه کله د قبرنه اوچتیږی نودا ښکلې وجودونه به د هغوی په وړاندې وړاندې روان وی اوهغوی ته به دهر قسم خیر او زیری ورکوی اوچه کله هغه نیکوکار تپوس کوی چه ته څوك ئې؟ نو وائی به چه مونږ ستا نیك اعمال یو اواوس به هغوی ددوی په وړاندې د نور په شان روان وی او جنت پورې به هغوی پریږدی. په دې وجه د الله ﷻ ارشاد دې چه ﴿یَهْدِیْهِمْ رَبُّهُمْ بِاِیْمَانِهِمْ﴾ اودکافرانو اعمال به ډیر په بد شکل کښې وی او ډیرد بدبوداره هوا په شان بدن به اختیاروی او هغه به خپل ملګری سره اینختې وی اوتردوزخ پورې به ئی راولي. د قتاده رحمه الله هم دا قول دې. والله اعلم.

د اهل جنت به داحال وی چه د هغوی خطاب ﴿سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ﴾ به وی.ابن جریج رحمه الله وائی چه کله هغوی سره یوه مرغئی الوزی دکومې خواهش چه به ددوی پیدا شي نو دا پورتنۍ کلمه به په ژبه اووائی هم

دغه به د دوی بلنه وی. او یوه فرښته به د دوی مرغوبات راوړی حاضره به شی سلام به اوکړی هغه به د سلام جواب ورکړی نو وانی به ﴿وَتَحِيَّتُهُمْ فِيهَا سَلَامٌ﴾ هغوی چه کله اوخوری نو د الله ﷻ حمد او شکر به ادا کړی هم د دې دپاره نې فرمانیلی ﴿وَآخِرُ دَعْوَاهُمْ أَنِ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ﴾ مقاتل ابن حیان رحمه الله وانی کله چه جنتیان د خوراك څه څیز غواړی نو ﴿سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ﴾ به وانی نوهغه له به لس زره خادمان دسرو زرو په خوانچوکښې هغه څیز حاضر کړی اوبه هره یوه خوانچه کښې به جدا جدا تازه خوراك وی.د هر یو نه به څه نه څه خوری.سفیان ثوری رحمه الله وانی چه کله یوسړې څه څیز غواړی نو﴿سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ﴾ به وانی اوداآیت ﴿وَتَحِيَّتُهُمْ فِيهَا سَلَامٌ﴾والا آیت په شان دې.اود الله ﷻ ارشاد ﴿لَا يَسْمَعُونَ فِيهَا لَغْوًا وَلَا تَأْثِيمًا ۝ إِلَّا قِيلًا سَلَامًا سَلَامًا﴾ وغیره داټول په دې خبره دلالت کوی چه پاك رب د همیشه همیشه دپاره محمود دې اودهمیشه معبود دې. د دې دپاره دخلق دشروع نه هغه په خپل ذات باندې حمد فرمانیلې او په استمرارحال کښې هم د قرآن په شروع کښې هم اود تنزیل په شروع کښې هم لکه چه فرمانی﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَنْزَلَ عَلَىٰ عَبْدِهِ الْكِتَابَ﴾ دکوم شرح احوال چه ډیر اوږده خواره دی. هغه اول او آخر محمود دې که هغه دنیا وی او که دین. په دې وجه په حدیث شریف کښې دی چه جنتیانوته تسبیح او تهلیل خودلې شوې دې څنګه چه د نفس خواهشات هم هغوی ته ورکړې شوی دی[1]اوچه څنګه څنګه د الله ﷻ نعمتونه په هغوی باندې زیاتیږی نو دا تسبیح اوتهلیل به هم زیاتیږی. نه به ددې اختتام وی نه انقضاء. د الله ﷻ نه علاوه بل یو الله پالونکې نشته.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لِلنَّاسِ | اللَّهُ | يُعَجِّلُ | وَلَوْ | |
| دپاره دخلقو | الله | جلتی کولې | چری | او که |
| اوکه الله ﷻ خلقو ته بدی هم داسې زر | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِلَيْهِمْ أَجَلُهُمْ | لَقُضِيَ | بِالْخَيْرِ | اسْتِعْجَالَهُمْ | الشَّرَّ |
| مهلت دعمل ددوئ | نوفیصله شوې به وو | نیکئ لره | پشان دزرغوبښتلو ددوئ | په رسولو دشر |
| نبکاره کولې خومره چې دوئ د ښیګړې په باره کښې تلوار کوی اَنو ددوئ نیته به (پخوا) پوره شوی | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَعْمَهُونَ ۝ | فِي طُغْيَانِهِمْ | لِقَاءَنَا | لَا يَرْجُونَ | الَّذِينَ | فَنَذَرُ |
| سرګردانه به وی | په سرکشئ دهغوئ کښې | دملاقات زمونږ | چې نه لری امید | هغه کسان | نوپریږدو مونږه |
| ودا نومونږ هغه خلق چې زمونږ دملاقات امید نه ساتی اپخپله سرکشئ کښې سروهلی بروهلی پریږدو | | | | | |

قوله تعالى: ﴿وَلَوْ يُعَجِّلُ اللَّهُ لِلنَّاسِ الشَّرَّ﴾

**دخپل ځان او خپل اولادد پاره بددعا نه دی کول پکار:-** الله ﷻ په خپلو بندیګانو باندې د خپل لطف او حلم خبرورکوی که چرې انسان د خپل زړه په تنګئ اود غصې په حالت کښې خپل ځان مال اولاد ته خیرې کوی نو الله ﷻ د هغه بددعا نه قبلوی ځکه چه هغه ته پته وی چه دابددعا دزړه په اراده سره نه کوی. دا د الله ﷻ بالکل رحم اوکرم تقاضاده خو هغه دعا قبلوی چه د خپل ځان د پاره وی که د اولادیا مال حال دپاره وی. ددې دپاره خو فرمانی چه الله ﷻ دې هغوی ته مصیبت رسولوکښې هم داسې جلدی اوکړی لکه چه انسان د خپل خیر دپاره جلدی کوی نود هغه دپاره خودې نه راتلونکې مرګ راشی. خود انسان دپاره دا بالکل ښه نه دی چه بار بار دا وانی اود خیرو کولوعادت په ځان کښې واچوی. لکه چه حضورﷺ فرمانیلی خپل ځان ته خیرې مه کوئې اونه خپل مال اولاد ته خیرې کوئې.

---

[1] صحیح مسلم: كتاب الجنة باب في صفات الجنة واهلها...:۲۸۳۵.

خکه چه بو نه یو وخت خو ددعا د قبلیدو وی که هغه وخت دې د خلې نه خیرې اووتلې نو پوره کیږی
بلا(١) مجاهد ﷫ ددې آیت په تفسیرکښې وئیلی دی چه دابددعا دانسان قول دې چه د غصې په وخت
کښې د خپل خان یامال اولاددپاره ئی کوی.پداسې صورت کښې پکاردی چه سړې دې زردا
اووانی(اللهم لاتبارك فيه) یعنی اې الله پدې خبره کښې برکت مه اچوه کنی نودهغه خبره به قبوله شی
نوهم د هغه تباهی به اوشی.

| وَاِذَا | مَسَّ | الْاِنْسَانَ | الضُّرُّ | دَعَانَا | لِجَنْۢبِهٖٓ | اَوْقَاعِدًا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او کله چی | اورسیږی | انسان ته | تکلیف | نو رابلی مونږه | پروت په اړخ خپل | یا په ناسته |
| اوکله چې په انسان باندې سخته راشی | نو هغه وخت کښې مونږ رابلی | هم په ملاسته هم په | | | | |

| اَوْقَآئِمًا | فَلَمَّا | كَشَفْنَا | عَنْهُ ضُرَّهٗ | مَرَّ | كَاَنْ | لَّمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| یا په ولاړه | نوهرکله چې | لرې کړومونږه | دهغه نه تکلیف دهغه | نو تیر شی | لکه چې | هغه هډو نه وو کړې |
| ناسته او هم په ولاړه | خو بیا چې کله مونږ ترې تکلیف لرې کړو | نو داسې (په مخه) روان شی | لکه | | | |

| يَدْعُنَآ | اِلٰى ضُرٍّ مَّسَّهٗ | كَذٰلِكَ | زُيِّنَ |
|---|---|---|---|
| اواز مونږ ته | دفع کولو دهغه ضرر ته چې رسیدلې وو هغه ته | دغه شان | ښائسته کړې شوی دی |
| چې ده هډو په دغه سخته کښې مونږ رابللی نه وو | | داسې دحد نه تیریدونکو خلقو ته | |

| لِلْمُسْرِفِيْنَ | مَا | كَانُوْا | يَعْمَلُوْنَ۝ |
|---|---|---|---|
| دپاره دحدنه داوړیدونکوخلقو | هغه عملونه | چې وو هغوی | چې کول به ئې |
| دهغوئ کارونه ښائسته کولې شی | | | |

قوله تعالی:: مَرَّكَاَنْ لَّمْ يَدْعُنَآ اِلٰى ضُرٍّ مَّسَّهٗ

**دانسان احسان هیرول:-** ددې آیت باره کښې الله ﷻ خبرورکوی چه کله انسان یو مصیبت سره مخ کیږی. لکه چه فرمانی ﴿وَاِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ فَذُوْدُعَآءٍ عَرِيْضٍ۝﴾ یعنی چه کله مصیبت راځی نو ډیرې اوږدې اوږدې دعاګانې غواړی. وراندینې آیت او دا آیت دواړه په یوه معنی دی. خکه چه کله ورته سختی رسی نو بې تابه او بې صبره شی. په ملاسته ولاړه ناسته اوتلوراتلوکښې په وینبه او اوده د مصیبتونو لرې کیدو دعاګانې غواړی. خوچه کله الله ﷻ ده د مصیبتونواو خفګانونونه خلاصې ورکوی نو بیا هغه ده کوی اړخ بدلوی لکه چه په ده باندې هډو مصیبت راغلې نه وو.الله ﷻ د دې طریقې مذمت کولو سره فرمانی چه دا خبره خو ګناهګارانو او بدکارانو سره ښه ښانی اوچه الله ﷻ چاته هدایت اوتوفیق ورکړې دې هغوی د دې نه خلاص دی. لکه چه حضور ﷺ فرمانیلی دی. دمؤمن معامله هم څه بل شان ده کوم څیز چه دالله ﷻ د طرف نه هغه سره کیږی نو د هغه دپاره هم خیر جوړیږی که نقصان ورارورسیدو او هغه صبر اوکړو نو اجرملاؤ شو اوکه راحت اوخوشحالې ملاؤ شوه او شکر ئی اوکړونواجرملاؤشو. اودا مهربانئی خو صرف هم مؤمن سره مخصوص دی.(٢)

(١) ابوداؤد، کتاب الوتر باب النهی ان یدعوالانسان علی اهله وماله:١٥٣٢،صحیح مسلم:٣٠٠٩ کښې د دې معنې روایت موجود دې.
(٢) صحیح مسلم کتاب الزهد باب المؤمن امره کله خیر:٢٩٩٩.

وَلَقَدْ أَهْلَكْنَا

او په تحقيق سره هلاك كړل مونږ

او یقینی طور مونږ ستاسو نه مخکښې ډیر نسلونه تباه کړی دی

الْقُرُونَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَمَّا ظَلَمُوا وَجَاءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ

خلق دزمانې چې وو مخكښې ستاسونه | هر كله چې ظلم اوكړو هغوئ او راغلې وو هغوئ ته رسولان دهغوئ

هر كله چې به د حدنه تير شو | او هغوئ ته دهغوی پيغمبران ښكاره په دليلونو سره راغلي وو

بِالْبَيِّنَاتِ وَمَا كَانُوا لِيُؤْمِنُوا كَذَلِكَ نَجْزِي الْقَوْمَ الْمُجْرِمِينَ

دواضحه نښو سره | اونه وو هغوئ چې ايمان ئې راوړې وې | دارنګې ابدله وركوو مونږه قوم | مجرمانو ته

خو هغوئ د ايمان راوړلو خلق نه وو . | مونږ مجرمانو خلقو ته دغه شان سزاګانې وركوو

ثُمَّ جَعَلْنَاكُمْ خَلَائِفَ فِي الْأَرْضِ مِنْ بَعْدِهِمْ لِنَنْظُرَ

بيا | اوګرځولئ مونږ تاسو | روستو په پاتې كيدونكي | په زمكه كښې | روستو دهغوئ نه | دپاره ددې چې اوګورو مونږه

بيا مونږ تاسو دهغوئ نه پس په مخ د زمكې نائبان جوړ كړنئ | د دې دپاره چې اوګورو

كَيْفَ تَعْمَلُونَ

چې څه رنګې | عمل كوئ تاسو |

چې تاسو څنګه كارونه كوئ |

**قوله تعالى: ثُمَّ جَعَلْنَاكُمْ خَلَائِفَ فِي الْأَرْضِ**

**ددنیاویژوندون حقیقت:** الله ﷻ خبر وركړې دې چه مخكينو رسولانو كله هغه كافرانو ته ښكاره دلائل او واضحه نښې راوړې راغلې وو او هغوی تكذيب كړې وونو څنګه هلاك كړې شوې وو او بيا دهغوی نه پس الله ﷻ هغه قوم پيدا كړې دې او هغوی ته ئې خپل يو رسول ليګلې دې او ګورې چه دوی هم دوخت د رسول خبره منی كه نه. حضورﷺ اوفرمائيل چه دنيا ډيره خوږه او آباده ده. اوس الله ﷻ تاسو د مخكينو قومونو جانشين جوړ كړې ئې دې دپاره چه اوګوری تاسو څنګه عمل كوئې. يكار ده چه د دنياوی ناجائزه خواهشاتونه جدا شئ او غښه خبره داده چه د ښځو نه محتاط اوسيږئ. ځكه چه په بنی اسرائيلو كښې ړومبئ فتنه راغلې وه هغه هم د ښځو فتنه وه.(١)

يوځل عوف بن مالكؓ خپل خوب حضرت ابوبكر صديقؓ ته بيانولو لكه چه آسمان سره يوه رسى لګيدلې ده او رسول اللهﷺ هغه راښكله بيا هغه آسمان سره زوړند شوه نو بيا ابوبكرؓ راښكله بيا خلقو د منبر د طرف نه هغه ناپ كړه اود حضرت عمرؓ په ناپ كښې هغه د منبر نه درې لاسه اوږده راووتله. هلته حضرت عمرؓ هم و وحضرت عمرؓ چه واوريده نو وئې ويل چه ستا خوب پريږده، د څه خوب اوزمونږ هغې سره څه تعلق، خو چه كله عمرؓ خليفه شو نو عوفؓ ته ئې اوويل عوفؓ ته خو هغه خپل خوب لرشان واوروه عوفؓ ونيل اوس په خوب څه كوې تاخوزه په خوب باندې رټلې ووم. حضرت عمرؓ اوفرمائيل چه الله ﷻ دې ستا ښيګړه اوكړی ما هيڅ كله دا نه خوښول چه ته د نفس خليفه د رسول اللهﷺ ته دده د مرګ خبر واوروې. بيا عوفؓ خپل خوب بيانول شروع كړو خو

١) صحيح مسلم كتاب الرقاق باب اكثر اهل الجنة الفقراء..: ٢٧٤٢.

چه کله تردې خاۍ راورسیدو چه خلقودمنبره پورې درې درې لاسه هغه ناپ کولو. نوحضرت عمر ﷺ اوفرمائیل چه یوخو په دې دریو کښې یو خو دا چه دې به خلیفه وی دویم دا چې چه د الله ﷻ په معامله کښې د چا دملامتیا څه پرواه نه کوی اوپه دریم لاس باندې د ختمیدومطلب دادې چه هغه به شهید کیږی. عمر ﷺ اوفرمائیل د الله ﷻ ارشاد دې ﴿ثُمَّ جَعَلْنٰكُمْ خَلٰٓئِفَ فِي الْأَرْضِ مِنْۢ بَعْدِهِمْ لِنَنْظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُوْنَ﴾ اوس مونږ تا خلیفه جوړوو اوګورو چه ته څنګه عمل کوې. نواې عمر ﷺ! اوس ته خلیفه جوړ شوې اودکولو په وخت کښې سوچ کوه چه څه کوې. ﴿لَوْمَةَ لَآئِمٍ﴾ نه د نه ویریدلوحکم کوم چه عمر ﷺ اوکړو هغه د احکام الهی باره کښې وو اود لفظ شهید نه مراد دحضرت عمر ﷺ دا وو چه زما د پاره شهادت مقدردې اوهغه وخت دې چه ټول خلق به زما حکم منونکی وی.([1])

وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيَاتُنَا بَيِّنٰتٍ

او کله چې | اولوستې شي | په هغوئ باندې | ایتونه زمونږه | واضحه

او هرکله چې دوئ ته زمونږ څرګنده ایتونه اولوستې شي انو څوک چې

قَالَ الَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ لِقَآءَنَا ائْتِ بِقُرْاٰنٍ غَيْرِ هٰذَآ اَوْ بَدِّلْهُ

نوواېي هغه کسان | چې امید نهٔ لري | دملاقات زمونږ | راوړه | یو قرآن | اچې بدل وی ددې نه | یابدل کړه دا قران

زمونږ دملاقات امید نه لري اهغوئ وائی چې ددې نه بغیر یو بل قران راوړه ایا هم په دې کښې (لږه ډیره) تبدیلی اوکړه

قُلْ مَا يَكُوْنُ لِيْٓ اَنْ اُبَدِّلَهٗ مِنْ تِلْقَآئِ نَفْسِيْ اِنْ اَتَّبِعُ

ورته اووایه | چې نهٔ ښائی | ماله | چې بدل کړم داقرآن | دطرفه | دنفس خپل نه | نهٔ کوم پیروی زهٔ |

ورته اووایه چې څه داسې نشم کولې | چې د خپل خانه په دې کښې بدلون اوکړم | زهٔ خو په هغې حکم

اِلَّا مَا يُوْحٰٓى اِلَيَّ اِنِّيْٓ اَخَافُ اِنْ عَصَيْتُ رَبِّيْ عَذَابَ

مګر | دهغه حکم | چې وحي کیږی | ماته | بیشکه زهٔ | یریږم | که نافرمانی اوکړه زهٔ | درب زما | دعذاب

پسې روان یم | کوم چې ماته دوحی په ذریعه رارسی | که زهٔ دالله ﷻ دحکم نا فرمانی اوکړم | نو د (قیامت)

يَوْمٍ عَظِيْمٍ ۝ قُلْ لَّوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا تَلَوْتُهٗ عَلَيْكُمْ وَلَآ

دورځې لوئ | ورته اووایه | که چرې غوښتلې الله | نهٔ به ووٓ | اورولې ما داقرآن | په تاسو | اونهٔ به

په ورځ د عذاب نه ویریږم | اته ورته اووایه که دالله ﷻ رضا وې انو ما بهٔ دا کلام تاسو ته اورولې نه وې

اَدْرٰىكُمْ بِهٖ فَقَدْ لَبِثْتُ فِيْكُمْ عُمُرًا

الله خبردرکړې ووتاسوته | په دې قرآن | نوپه تحقیق سره اوسیدلې وم زهٔ | په تاسو کښې | ډیر عمر

او نه بهٔ پرې | الله ﷻ تاسو خبر کړې وئ | او بیا زه خو په تاسو کښې ددې نه پخوا ډیر عمر پاتې شوې یم

مِّنْ قَبْلِهٖ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ۝

مخکښې ددې نه | آیا نه چلوئ عقل تاسو |

ایا تاسو دعقل نه کار نه اخلئ.

---

[1] الطبری: ۳۹/۱۵.

قوله تعالی: قُلْ مَا يَكُونُ لِيٓ أَنْ أُبَدِّلَهُ

**دشریعت جوړونکې صرف دالله ﷻ ذات دې یونبي هم بدلون نه شي کولې**:-د قریشو مشرکانو کنبې چه کوم سرکش کافران وو اود هرې خبرې نه به انکاراواعراض کولود هغوی باره کښې ارشاد کولې شي چه رسول الله ﷺ به کله د الله ﷻ کتاب هغوی ته اورولو او واضحه دلائل به ني پیش کول نو وئيل به ئې چه د دې قرآن نه علاوه بل قرآن راوړه چه په بله طریقه باندې لیکلې شوې وي.اوس الله ﷻ خپل نبیﷺ ته ارشاد فرمائي چه دوی ته اووايه چه زماځه حق دې چه زه دخپل طرف نه قرآن بدل کړم. زه خو صرف یو مقررشوې بنده یم اود الله ﷻ پیغام رسونکې یو قاصد یم. دا هرڅه چه ما ستاسوپه وړاندې پیش کړې دي دا هر څه د الله ﷻ رضا اوارادې سره دي. زه خو هم هغه کوم چه په ماکومه وحی اوشي. که ما د الله ﷻ نافرماني اوکړه نوزه د الله ﷻ د قیامت عذاب نه ډیر ویریږم.اوددې خبرې دلیل چه دا زما د طرف نه جوړې شوې خبرې نه دی دا دې که چرې ما جوړولې شوې نوتاسو به هم جوړولې شوې. اوتاسو هم د دې د جوړولونه عاجز ئې.نو زه به بیا څنګه عاجز نه یم. ښکاره خبره ده چه د الله ﷻ نه سوا دبل چا کلام نه شي کیدې او بله دا چه تاسو زما صداقت اوامانت د هغه وخت نه پیژنئي د کوم وخت نه چه زه ستاسو په قوم کښې پیدا شوې یم او اوس هم زما صداقت پیژنئي چه زه تاسو ته رالیکلې شوې یم. تاسو زما په صداقت او ایماندارئي باندې یوه ذره نیول نه شئي کولې.په دې وجه خو الله ﷻ اوفرمائیل چه اووایه ما تاسوسره یواوږد ژوندتیر کړې دې. تاسودومره هم نه پوهیږئي چه حق او باطل جدا جدا کړئي.په دې وجه چه د هرقل بادشاه دابوسفیان اود هغه د ملګرو نه د نوې نبي باره کښې حالات معلوم کړل اود ابوسفیان نه ئې تپوس اوکړو چه په تاسو باندې چرې د هغه دروغ ثابت شوی دی؟ نوابوسفیان اووئیل چه نه.ابوسفیان خو په هغه زمانه کښې دکافرانو سردار اود مشرکانومشر وو.خوسره د دې هغه د حق خبرې اعتراف اوکړو(والفضل ما شهدت به الاعداء) نوهرقل اووئیل چه کوم سړی د انسانانو په معامله کښې دروغ نه دی وئیلی نوهغه به دالله ﷻ په معامله کښې څنګه دروغ اووائي؟[1]اوحضرت جعفر ﷺبن ابی طالب نجاشي بادشاه ته وئیلي ووچه الله ﷻ مونږله یورسول رالیکلې دې دچاد ذاتي ریښتونولي اودنسب دخویو اوامانت نه چه مونږ ښه خبرخوبیانواود نبوت نه وړاندې د هغه قیام مونږ سره څلویښت کاله پورې شوې. او سعید بن المسیب ﷺ درې څلویښت پورې واني خو زیات صحیح قول رومبی دې.

| فَمَنْ | أَظْلَمُ | مِمَّنِ | افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ | كَذِبًا | أَوْ كَذَّبَ |
|---|---|---|---|---|---|
| نو څوک دي | زیات ظالم | دهغه چانه | چې اوتړي هغه په الله باندې | دروغ | یا دروغ اوګڼړي |
| نو د هغه چا نه غټ ظالم به څوک وی \| چې په الله ﷻ باندې د دروغو تهمت لګوی | | | | | |
| بِآيَاتِهِ | إِنَّهُ | لَا يُفْلِحُ | الْمُجْرِمُونَ | | |
| آیتونه دهغه | بیشکه شان دادې چې | اخلاصي نه شي مومندلې | مجرمان خلق | | |
| یا دهغه ریښتوني نښې دروغ ګڼړي \| بیشکه مجرمان نشي کامیابیدې | | | | | |

قوله تعالی: فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَىٰ

**د أقا نوراني مخ مبارک هم د صداقت یودلیل دې**: الله ﷻ فرماني چه د هغه نه لوئ ظالم او سرکش څوک کیدې شي څوک چه په الله ﷻ باندې بهتان تړي،اود الله ﷻ باره کښې دروغ خبرې جوړوی. اود دروغو

[1] صحیح بخاری کتاب بدء الوحی باب کیف کان بدء الوحی الی رسول الله :۷، صحیح مسلم:۱۷۷۳.

دعوی کوی چه هغه د الله ﷻ رالیکلی شوې دې. دې نه زیات څوك مجرم او ګناهګار نه شي جوړیدې. داخبره خویوکم عقل اوبد سړی نه هم پته نه ده نو د هوښیارانواوانبیاء علیهم السلام نه څنګه پته پاتې کیدې شي.څوك چه د نبوت دعوه کوی که هغه دروغژن وی که رښتوني الله ﷻ د هغه په بدکارئی او نیکوکارئی باندې دلائل قایمه وی کوم چه د نمر په شان پرقیدونکی وی.حضرت محمد ﷺ او مسیلمه کذاب دواړه چه چا کتلی دی د دواړو فرق بالکل داسې پیژندلې شی لکه چه څوك په رڼا ورځ او دنیمې شپې په تیاره کښې فرق کولې شی.اوس د دواړو د خصلتونو کلام مقابله اوکړئی نو صفابه فرق معلوم شی چه د محمد ﷺ په قول او فعل کښې څومره صداقت دې. او په مسیلمه کذاب، سجاح او اسودعنسی کښې څومره دروغ او بې ایمانی ده.

عبدالله بن سلام ﷺ وائی چه رسول الله ﷺ کله مدینې ته تشریف راوړو نو خلق دحضور ﷺ په راتلویاندې ډیر خوشحاله وو. په خوشحاله خلقو کښې زه هم ووم. ما په اول خل چه حضور ﷺ اوکتلو نو زما زړه ګواهی ورکړه(حاشاوکلا) دا نورانی مخ مبارك خود دروغژن سړې کیدې نه شی.ما چه دحضور ﷺ د ژبې مبارکې نه ړومبنئی کومه خبره واوریده هغه داده چه: اې خلقویه خپل مینځ کښې یو بل ته سلام کوئې، د هغه د فلاح د الله ﷻ نه دعاغواړئی، د غریبانانو او اوږوخیته مړوئې، خپلوانو سره صله رحمی کوئې، د شپې مونځونه کوئې چه کله خلق اوده وی، تاسو به بې د تپوسه جنت ته اورسئی.(۱)

ضمام بن ثعلبه د خپل قوم بنی سعد بن بکر د طرف نه چه کله د حضور ﷺ په خدمت کښې حاضرشو نو حضور ﷺ ته اووئیل چه ښه ده اوښایه دا آسمان دومره چا اوچت کړې دې. حضور ﷺ اوفرمائیل الله ﷻ، هغه بیا تپوس اوکړو دا غرونه په زمکه کښې دننه چا ورخښ کړی دی؟ حضور ﷺ اوفرمائیل الله. بیائې تپوس اوکړودا زمکه چا خوره کړې ده. حضور ﷺ اوفرمائیل الله. بیا ئې اووئیل چه ستا دې قسم وی په هغه ذات چا چه دا آسمان جوړکړې، دا لوئ لوئ غرونه ئې په زمکه کښې ورخښ کړی او دا دومره لویه پلنه زمکه ئې خوره کړې ده آیا هغه ته دټولو انسانانوطرفته رسول جوړکړې رالیکلې؟ حضور ﷺ اوفرمائیل چه اوزما دې قسم وی په هغه الله ﷻ چه زه ئې رالیکلې یم. بیا ئې د حضور ﷺ نه د مانځه، زکوة، حج،اوروژې باره کښې اود هریورکن باره کښې په قسمونوورکولو سره تپوس اوکړو او حضور ﷺ هم دهغه الله ﷻ قسمونه خوړلوسره جواب ورکولو. هغه اووئیل چه بیا خو ته رښتوني ئې او چه کوم ذات الهی ته په رښتونی نبی جوړکړې رالیګلې ئې چه زه به په دې ارکانو باندې نه زیاتې کوم او نه کمې (۲) په صحیح توګه به عمل کوم. نو دومره پوره والې به د هغه د پاره کافی وی اوهغه دنبی په صداقت باندې ایمان راوړو. څکه چه هغه شواهد او دلائل اوکتل. حسان بن ثابت ﷺ وائی:

(لولم تکن فیه آیات مبینة        کانت بدیهته تأتیك بالخبر)

یعنی که حضور ﷺ سره دلائل هم نه وې خود حضور ﷺ دمخ مبارك پاکیزګی، سادګی او معصومیت د حضور ﷺ د صداقت اوحقانیت دلیل وو.

**د رسول مقابل کښې د مسیلمه حالت او ده خرافات:**:خو مسیلمه کذاب چه د بصیرت صاحبانوکښې چا هم لیدلې اود هغه کمزوری اقوال، رذیله خبرې اترې، غیرفصیح کلام اوخراب کارونه اودهغه د دروغودعوه کونکې قرآن کتلوسره چه هغه به دوزخ ته رسوی نو پریږدی به ئې نه به دانتیجه راوباسې چه هغه د نبوت څنګه د دروغو دعوی کونکې وو.د ا لله تعالی دا قول(اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ اَلْحَیُّ الْقَیُّوْمُ لَا تَاْخُذُهٗ سِنَةٌ وَّلَا نَوْمٌ) اودمسیلمه وینا (یاضفدع بنت ازصفدعین. نقی کم تنقین. لاالماء تکدرین ولا الشارب تمنعین)اې دچندخو اولاد چیندخو.چغې وهې چه څومره تریږنې،ستا په تریدو باندې به نه اوبه خرابې شی اونه به څکونکې

---

۱) ترمذی کتاب صفة القیامة باب حدیث افشواالسلام:۲۴۸۵ وسنده صحیح، ابن ماجه:۳۲۵۱.

۲) صحیح بخاری کتاب العلم باب القراءة والعرض علی المحدث:۶۳، صحیح مسلم:۱۲، ابن حبان: ۱۵۴.

منع شي اوددې ظالم يوه وحي داده چه ﴿لقدانعم الله على الحبلى. اذاخرج منها نسمة تسعى من بين صفاق وحشا﴾ الله ﷻ ډير لوئ احسان اوكړو په حامله ښځه باندې چه يو ژوندې روح ئې د هغې د جلئي او كولمودننه نه بهر راوويستلو او ﴿الفيل وما الفيل وما ادراك ما الفيل له ذنب قصير وخرطوم طويل﴾ هاتهي څه شان دي د هاتهي آيا تاسوپوهه شوئي چه هاتهي څه څيزدې دهغه لكئي وړه وى اوخرتم ئې اوږد وى.او ﴿والعاجنات عجنا والخابزات خبزا واللاقمات لقما اهالة وسمنا ان قريشا قوم يعتدون﴾ قسم د اوړو اخونكو ښځو،دروټئي پخونكوښځو، په ترکارئي اوغوړوكښې نورئي چوره كونكو خوړونكو ښځو چه قريش ډير ظالم قوم دي. اوس دحضرت محمد ﷺ پاكه وحي اود دې كاذب فضول او ګډودو خبرو باندې غوراوكړئي چه ماشومان به هم دده په خبرو پورې توقى كوى په دغه وجه الله ﷻ هغه ذليل كړو. او په يوم حديقه كښې هلاك كړو.د هغه ډله مرداره شوه اوبه ملګروئي لعنت اووريدو. حضرت صديق اكبر﵁ ته د هغه خلق د توبې د پاره راغله او په دين كښې داخل شو نوحضرت صديق اكبر﵁ خليفه رسول هغوى ته اوونيل چه د مسيلمه كذاب څه قرآن خو واوروئي.هغوى معافي اوغوښته نوصديق اكبر﵁ كلك شواو وئې فرمائيل چه خامخا به ئې اوروئي.داموني چه پورته څه نقل كړل نودائي واورولو.صديق اكبر﵁اوفرمائيل چه كم بختانو ستاسو عقل چرته تلې وو په الله قسم دا خو به د يو بې وقوف دخُلې نه هم اونه خي.وائي چه عمرو بن العاص﵁ مسيلمه كذاب له راغلو، د جاهليت په زمانه كښې هغه د ده دوست وو. تر دغه وخته پورې عمروبن العاص﵁ لا اسلام نه وراوړې. نو هغه ته مسيلمه كذاب اوونيل اې عمروا نن صباستاسو په سړى (نبى ﷺ) باندې كومه وحى نازل شوې نوابن العاص اوونيل چه ما دهغه د ملګرو نه يو ډيرزبردست سورة خو ډيرمختصر اوريدلې.تپوس ئې اوكړو كوم يو؟ عمرو اوونيل ﴿وَالْعَصْرِۙ اِنَّ الْاِنْسَانَ لَفِیْ خُسْرٍۙ﴾ مسيلمه لږ ساعت سوچ اوكړواو وئې ونيل چه په ما باندې هم داسې يوه وحى راكوزه شوې ده.عمرو تپوس اوكړو چه هغه كومه يوه ده. نو وئې ونيل ﴿ياوبر ياوبر انما انت اذنان وصدر وسائرك حفرة نقر﴾ اې وبر اې وبر(ځناور) ستاخوغوږونه او راوتلې سينه ښه ښكارى باقى ټول بدن خو ټيټ پيټ دې. بيا ئې اوونيل ولې اې عمرواوحى ځنګه وه. نوعمرو بن العاص اوونيل د الله ﷻ قسم چه ته پخپله پوهيږې چه زما ستا دوحى دكذب يقين دې. نو چه كله د يومشرك دا حال وى چه د نبى كريم ﷺ صداقت اود مسيلمه كذب دهغه نه پټ نه دې نود بصيرت د خاوندانو نه دا خبره چرته پټه پاتې كيدې شى. په دې وجه الله ﷻ فرمائى ﴿وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَوْ قَالَ اُوْحِیَ اِلَیَّ وَلَمْ یُوْحَ اِلَیْهِ شَیْءٌ﴾ دده نه به لوئ ظالم څوك وى چه په الله ﷻ باندې دروغ تړى او وائى چه په ما باندې وحى رانازله شوې. سره ددې نه چه په هغه وحى نه وى رانازله شوې.ياداوائى چه دپيغمبرغوندې زه هم پيغمبريم.اوداسې هغه سړې هم ډير دروغژن دې چه دپيغمبر ﷺ پيش كړې شوې وحى دروغ ګڼړې په كومه چه د الله ﷻ دليلونه قايم شوى وى.لكه چه په حديث كښې دى چه هغه ډير كمبخت اوظالم دې چا چه نبى قتل كړويا يونبى هغه قتل كړو.([1])

<table>
<tr><td>وَلَا</td><td>مَا لَا یَضُرُّهُمْ</td><td>مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ</td><td>وَیَعْبُدُوْنَ</td></tr>
<tr><td>اونه</td><td>دهغې چې ضررنشي رسولې دوئ ته</td><td>اودوئ دالله ﷻ نه سوا ماسوادالله نه</td><td>اوداخلق عبادت كوى</td></tr>
<tr><td>او نه فائده</td><td>چې نه ورته نقصان رسولې شى</td><td>ددې څيزونو عبادت كوى</td><td></td></tr>
<tr><td>قُلْ</td><td>عِنْدَ اللّٰهِ ؕ</td><td>شُفَعَآؤُنَا</td><td>وَیَقُوْلُوْنَ هٰۤؤُلَآءِ</td><td>یَنْفَعُهُمْ</td></tr>
<tr><td>اووايه اے نبى</td><td>په دربار دالله كښې</td><td>سفارشيان دى زمونږه</td><td>اووائى دوئ چى دا</td><td>نفع رسولې شي دوئ ته</td></tr>
<tr><td>ورته اووايه ايا تاسو</td><td></td><td>په دربار كښې سفارشيان دى</td><td>او وائى چې دوئ دالله ﷻ</td><td></td></tr>
</table>

[1] احمد:۱/۴۰۷ وسنده حسن، مجمع الزوائد:۵/۲۳۶، المعجم الكبير:۱۰۴۹۷،

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَتُنَبِّئُونَ | اللّٰهَ | بِمَا | لَا يَعْلَمُ | فِي السَّمٰوٰتِ | وَلَا فِي الْأَرْضِ ط |
| ایا خبروركوئ تاسو | الله ته | په هغه ځیز | چي معلوم نه دي هغه ته | په آسمانونو كښي | اونه په زمكه كښي |

الله ﷻ ته دهغه خبري نه خبروني | كومي چي هغه ته نه خو په آسمانونو كښي معلومي دي | اونه په زمكه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| سُبْحٰنَهٗ | وَتَعٰلٰى | عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿١٨﴾ | وَمَا | كَانَ النَّاسُ | اِلَّآ | اُمَّةً |
| پاك دي هغه | او اوچت دي | دهغه ځیزنونه شریك كوي ئي دوئ | اونه وو | دا خلق | مګر | امت |

كښي | هغه پاك دي | او ددوئ دشرك كه ډیر اوچت دي | او (په اول) كښي خلق په یو لار روان وو | بیا په

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَّاحِدَةً | فَاخْتَلَفُوْا ط | وَلَوْلَا | كَلِمَةٌ | سَبَقَتْ | مِنْ رَّبِّكَ |
| یو | روستو اختلاف اوكړو هغوئ | او كه نه وي | خبره هغه | چي مخكښي فیصله شوی ده | دطرفه درب ستا نه |

كښي اختلاف پیدا شو | او كه ستا دپروردګار د طرفنه اول یو خبره فیصله شوي نه وي | نو د دوی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَقُضِيَ | بَيْنَهُمْ | فِيْمَا | فِيْهِ | يَخْتَلِفُوْنَ ﴿١٩﴾ |
| نو خامخا به فیصله شوی وه | په منځ ددوئ كښي | په هغه ځیزكښي | چي په هغي كښي | اختلاف كوی دوئ |

په مینځ كښي به ددي | اختلاف په حقله (پخوا) فیصله شوي وه | اودوئ چي وائي چي ولي په ده

**قوله تعالى: وَيَقُوْلُوْنَ هٰٓؤُلَآءِ شُفَعَآؤُنَا عِنْدَ اللّٰهِ ط**

**مشركانو به د بتانوعبادت صرف وسیله ګڼړله.** الله ﷻ هغه ته رټنه وركوی چه الله ﷻ پریږدی اود وړو معبودانوعبادت كوی. چه نه الله ﷻ ته سفارش كولي شي (لكه چه دمشركانوخیال دي) نه نقصان رسولي شي اونه فائده رسولي شي، نه د څه ځیز مالكان دی اونه چه څه غواړی كولي شي. په دي وجه الله ﷻ فرمائي (قُلْ اَتُنَبِّئُوْنَ اللّٰهَ بِمَا لَا يَعْلَمُ فِي السَّمٰوٰتِ وَلَا فِي الْاَرْضِ ط) یعني آیا تاسو الله ﷻ ته د هغه ځیز خبروركوئي كوم چه نه په آسمانونو كښي شته اونه په زمكه كښي. بیا د شرك اوكفرنه خپل ځان پاك ګڼړلوسره دا ارشاد فرمائي (سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿١٨﴾)

**ابتداء كښي خلق ټول په اسلام وو:** الله ﷻ خبروركوی چه شرك په خلقوكښي راپیداشو. دهغي وجود نه وو بیاپیداشو. ټول خلق په یو دین باندي وو اوهغه د شروع نه اسلام وو. ابن عباس ﷺ فرمائي چه د آدم ﷺ اونوح ﷺ لس قرن تیرشو اودا ټول خلق د آدم ﷺ په ربښتوني دین باندي وو. بیا په خلقوكښي اختلاف پیداشو[1] اوخلقو د بتانو عبادت شروع كړو نوالله ﷻ خپل رسول په دلیلونوثبوتونو سره راولیږلو.چا چه د الله ﷻ دلیل پریخودوهغه هلاك شو او چاچه دلیل خپل كړو هغوی سلامت پاتې شو. (وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَّبِّكَ) الله ﷻ چاله عذاب نه وركوی ترڅوچه پیغمبر ﷺ راونه لیږي دلیل او حجت قایم نه كړي.الله ﷻ خو به مخلوق د یومقرر وخت پورې ژوندی ساتل اوبیا به ئې مره كول اود كوم ځیز باره كښې چه هغوی په خپلوكښې اختلاف ساتلود قیامت په ورځ به د هغې فیصله كوی. مؤمنان به كامیاب وی اوكافران به ذلیل وی.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَيَقُوْلُوْنَ | لَوْلَآ اُنْزِلَ | عَلَيْهِ | اٰيَةٌ | مِّنْ رَّبِّهٖ ج | فَقُلْ | اِنَّمَا |
| اووائی دوئ | ولي نازله نه كړې شوه | په ده باندې | څه نښه | دطرفه درب خپل نه | نو اووایه | چي بیشكه |

اودوی وائي چي ولي په ده باندي (زمونږ دوینا مطابق) دخپل پروردګارد طرف نه یوه نښه نه راځي نو ته ورته اووایه چي

[1] حاكم: ۲/۵۴۶.

| الْغَيْبُ | لِلّٰهِ | فَانْتَظِرُوْا | اِنِّيْ | مَعَكُمْ | مِّنَ الْمُنْتَظِرِيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| غیب علم | الله لره دي | نوانتظار کوئ تاسو | بیشکه زه | ستاسو سره | د انتظار کونکو نه یم |
| د غیبو اختیار صرف یو الله سره دي | | نو تاسو انتظار اوکړئ | | زه هم تاسو سره انتظار کونکي یم | |

قوله تعالى:: فَقُلْ اِنَّمَا الْغَيْبُ لِلّٰهِ فَانْتَظِرُوْا

**دغوښتلومطابق معجزه نه خودلوکښې هم د الله ﷻ حکمت پټ دې** :- دادروغژن کافران وائی چه محمدﷺ ته هم د نبوت داسې دلیل ولې ملاونه شو لکه چه ثمودیانوته اوښه ملاؤشوه یا دا چه د صفا غر ولې سره زر جوړ نه شو.یا دمکې غرونه دمکې نه ولې اخوانه شواودهغې په ځائ باغونه اونهرونه ولې جوړ نشو.چه الله ﷻ قادر دې نوداسې خوکیدل پکاروو.ربښتیا خبره خوداده چه الله ﷻپهخپلو افعالوکښې ډیرقادر اوحکیم دې. لکه چه فرمائی ﴿ تَبٰرَكَ الَّذِيْٓ اِنْ شَآءَ جَعَلَ لَكَ خَيْرًا مِّنْ ذٰلِكَ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ﴾ که د الله ﷻ ذات مبارك اوغواړی نوستاسو د پاره به ددې نه هم ښه باغونه پیداکړی دکومو لاندې چه نهرونه بهیږی اوپه هغې کښې دننه محلونه وی. ولې هغوی خود قیامت نه انکار کړې دې او چه څوك د قیامت نه انکارکوی د هغوی د پاره خومونږ د دوزخ اُور سورکړې دې. الله ﷻ فرمائی چه د مخلوق باره کښې زما اصول دا دی چه هغوی معجزه غواړی زه نې ورکوم. اوس که هغوی معجزې کتلو سره ایمان راوړونو بهتره ده ګنی ډیرزر به په هغوی باندې عذاب نازل کړم. بیاد قیامته پورې مهلت نه ورکوم. د دې د پاره الله ﷻ خپل نبی ﷺ ته اختیار ورکړوچه په دې دووخبرو کښې یوه اختیارکړه چه زه د هغوی دغوښتنې مطابق معجزه ورکړم،که هغوی ایمان راوړونو ښه ده ګنی نو عذاب به ډیرزر ورکوم. اوبله خبره دا چه زه هغوی ته ترمرګه پورې مهلت ورکړم چه اصلاح نې اوشی. نو حضورﷺ د امت باره کښې دویمه خبره اختیار اوفرمائیله. لکه څنګه چه په شلوخلو د نبی کریم ﷺ حلم دې کافرانوسره ثابت شوې دې. الله ﷻ خپل نبیﷺ ته فرمائی چه دا اوواپه چه هر څه د الله ﷻ په اختیارکښې دی.د امورو عاقبت اونتیجې هم هغه پیژنی.که چرې تاسو په خپلو سترګوکتلو نه بغیرایمان نه راوړل غواړئی نوزما اوخپله باره کښې د الله ﷻ د حکم انتظار کوئ. سره د دې چه هغوی د نبی کریم ﷺ بعضې داسې معجزې هم کتلې وې چه د هغوی د غوښتلې شوو معجزونه ډیرې لوئې وې. یعنی حضورﷺ د هغوی د سترګوپه وړاندې په خپله ګوته مبارکه سپوږمئی ته اشاره اوکړه هغه دوه ټکړې شوې یوه دغر نه یو طرف ته او بله بل طرف ته شوه. دا خو په زمکه باندې ښکاره کیدونکو معجزاتونه هم لویه معجزه وه. اود مسؤل او غیر مسؤل هریونه افضل نښه وه. اوس هم که د الله ﷻ په علم کښې وه چه دوی یومعجزه د رشد او هدایت په جذبه سره غواړی نو الله ﷻ به خامخا قبوله کړې وه.

**کافر اومشرک د ضد په وجه دمعجزاتلو باندې هم ایمان نه راوړی**:: خو هغوی د دښمنئی اوتعنت په توګه غوښتله. ددې دپاره د هغوی درخواست رد کړې شوې وو.الله ﷻ ته علم وو چه اوس به هم هغوی ایمان نه راوړی. لکه چه فرمائی﴿ اِنَّ الَّذِيْنَ حَقَّتْ عَلَيْهِمْ كَلِمَتُ رَبِّكَ ﴾په هغوی باندې د الله ﷻ دلیل متحقق شوې دې که هر قسم نښه ولې پیش نه کړې شی هغوی به ایمان نه راوړی.د الله ﷻ ارشاددې﴿ وَلَوْ اَنَّنَا نَزَّلْنَآ اِلَيْهِمُ الْمَلٰٓئِكَةَ وَكَلَّمَهُمُ الْمَوْتٰى ﴾ که چرې مونږ هغوی له فرښتې هم راولو او ویدروو اوهغه مړی هم دوی سره خبرې اوکړی او هر څیز هغوی سره راجمع کړې شی او هره معجزه ورته اوخودلې شی هیڅ کله به ایمان رانوړی. ځکه چه دهغوی مقصد صرف لوئی کول اوضد کول دی. لکه چه فرمائی﴿وَلَوْ اَنَّنَا نَزَّلْنَآ اِلَيْهِمُ الْمَلٰٓئِكَةَ وَكَلَّمَهُمُ الْمَوْتٰى﴾ او﴿وَاِنْ يَّرَوْا كِسْفًا مِّنَ السَّمَآءِ﴾ او ﴿ وَلَوْ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ كِتٰبًا فِيْ قِرْطَاسٍ﴾ که مونږ په دوی باندې د آسمانونو

دروازې هم کولاؤ کړو او هغوی داسمان یوه ټکره راپرېوتونکې هم اووینی او په هغوی باندې یو داسې آسمانی کتاب نازل کړې شی چه د کاغذونو دفتر وی کوم چه هغوی په خپلو لاسونو باندې هم نیولې شی بیا به هم دا کافران هم دغه وائی چه دا خو ښکاره جادو دې. نو بیا د هغوی خبرې منلو نه فائده څه. ځکه چه د هغوی مطالبات خو د دښمنئی او تعنت په بنیاددی. هم د دې دپاره خو اوفرمائیلې شو چه زه هم انتظار کوم او تاسو هم انتظار کوئې.

وَإِذَآ أَذَقْنَا النَّاسَ رَحْمَةً مِّنۢ بَعْدِ ضَرَّآءَ مَسَّتْهُمْ

او کله چې | ور او څکوؤ مونږه | خلقو ته | رحمت روستو | د هغه مصیبت نه | چې رسیدلې وی دوی ته

او هر کله چې مونږ (ناشکره) خلقو ته د رحمت خوند او څکووا د مصیبت نه پس چې رسیدلی وی ورته

إِذَا لَهُم مَّكْرٌ فِىٓ ءَايَاتِنَا ۚ قُلِ اللَّهُ أَسْرَعُ

نو فورا وی دوئ لره | بهانه | په آیتونو زمونږ کښې | دوئ نه اووایه | چې الله | زیات تیز دې

نو هغوئ زر زمونږ د آیتونو په حقله فریبونه شروع کړی | ورته اووایه چې الله ﷻ په فریبونو کښې

مَكْرًا ۚ إِنَّ رُسُلَنَا يَكْتُبُونَ مَا تَمْكُرُونَ ﴿٢١﴾ هُوَ الَّذِى

په لحاظ دېټ تدبیر سره | بیشکه | فرښتې زمونږ | لیکی | هغه مکرونه چې کوئ تاسو | هغه | هغه ذات دې

هغوئ نه هم وړاندې دې | بیشکه چې زمونږ استاذې ستاسو فریبونه لګیا دې لیکی | (الله) هغه ذات

يُسَيِّرُكُمْ فِى الْبَرِّ وَالْبَحْرِ ۖ حَتَّىٰٓ إِذَا كُنتُمْ فِى الْفُلْكِ

چې ګرځوئ تاسو | په اوچه کښې | او په دریاب کښې | نردې پورې | چې کله | سوارهٔ شئ تاسو | په کشتو کښې

دې چې تاسو په اوچه مزکه او په سمندر کښې ګرځوی اتر دې چې کله تاسو په کشتئ کښې سوارهٔ شئ

وَجَرَيْنَ بِهِم بِرِيحٍ طَيِّبَةٍ وَفَرِحُوا۟ بِهَا

او روانې شی | د دغه خلقو سره | په باد | ښه موافق سره | او خوشحاله شی هغوئ | په هغې سره

او هغه بیړئ دا خلق د موافق بادونو په ذریعه روان کړی | او دوئ پرې خوشحاله شی

جَآءَتْهَا رِيحٌ عَاصِفٌ وَجَآءَهُمُ الْمَوْجُ مِن كُلِّ مَكَانٍ وَظَنُّوٓا۟

نو راشی هغه کشتئ ته | باد | تیز مخالف | او راشی هغوئ ته | چپې | د هر خائې نه | او ګمان وشی د هغوئ

نو په دې کښې پرې ناڅاپه د مخالف بادونو یوه چپه راشی | او د هر طرف نه پرې د اوبو چپې راخورې شی

أَنَّهُمْ أُحِيطَ بِهِمْ ۙ دَعَوُا۟ اللَّهَ

چې بیشکه هغوئ چې دی | احاطه اوکړې شوه | په هغوئ باندې | نو په دغه وخت کښې رابلی | الله

او دوئ پوهه شی | چې (بس) اوس سم راګیر شو | نو هغوئ الله ﷻ ته آواز اوکړی | ډیر په اخلاص

مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ لَئِنْ أَنجَيْتَنَا مِنْ هَٰذِهِۦ

چې خالص کونکی وی | هغه لره | دین | که چرې | خلاصې راکړو تا مونږ لره | د دې مصیبت نه

سره | که تا مونږ (د دې طوفان) نه خلاص کړو | نو مونږ به ستا ډیر ډیر شکر ادا کړو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَنَكُونَنَّ | مِنَ الشّٰكِرِينَ ۝ | فَلَمَّآ | أَنْجٰىهُمْ | إِذَا هُمْ |

نو خامخا به شو مونږ | دشکر کونکونه | نوهر کله چې | خلاصي ورکړو دوئ ته الله | نوبيا دوئ
خو هر کله چې الله ﷻ ورته نجات ورکړی | نو لا ساعت تير شوې نه وی | چې دوئ د زمکې په مخ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَبْغُونَ | فِي الْأَرْضِ | بِغَيْرِ الْحَقِّ ط | يٰٓأَيُّهَا النَّاسُ | إِنَّمَا بَغْيُكُمْ |

بغاوت کوی | په زمکه کښې | په ناحقه سره | اے خلقو | بيشکه | بغاوت ستاسو
برناحقه سرکشی شروع کړی | ..........اے خلقو! داستاسو سرکشی هم ستاسو په خپلو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَلٰٓى أَنْفُسِكُمْ لا | مَّتٰعَ | الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ز | ثُمَّ | إِلَيْنَا مَرْجِعُكُمْ |

په نفسونو ستاسو باندې دې | نفعه | دژوند | ددنيا ده(وې کړئ) | بيا | مونږ ته | واپسی ده ستاسو
سرونو راپريوتونکې ده | ددنيا ژوند (ديو څوورځو) فائده ده | (مزې په کښې اوکړئ) بيا هم مونږ

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَنُنَبِّئُكُمْ | بِمَا | كُنْتُمْ | تَعْمَلُونَ ۝ |

نو مونږ به خبر درکړو تاسوته | په هغه عمل | چې وئ تاسو | چې کوئ به تاسو | بيشکه |
ته واپسی ده |نو مونږ به درته ستاسو ټول کارونه ښه په ګوته کړو |

قوله تعالى:: دَعَوُا اللّٰهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ ۚ

**مکې مشرکانوبه دمصيبت په وخت کښې صرف هم يو الله ته چغې وهلې:-** الله ﷻ فرمائی د مصيبتونو مزه څکلو نه پس کله انسان ته زمونږ د رحمت سره مخامخ کيدل کيږی لکه د غربت نه پس خوشحالی د قحط نه پس په کرکيله کښې بهترين پيداوار او باران وغيره نو هغوی توقې مسخرې او تکذيب کوی. او چه کله انسان مصيبتونه راګيرکړی هغوی په ناسته ولاړه ملاسته اووينه دعاګانې په ېندونو کوی. حضور ﷺ يو ځل دسحر مونځ وکړو او هغه د باران شپه وه.بيا حضور ﷺ اوفرمائيل چه آيا تاسو ته معلومه ده چه نن شپه الله ﷻ څه فرمائيلی؟ صحابه کرامو ﷺ عرض اوکړو الله ﷻ اود هغه رسول ﷺ ښه پوهيږی. نو وئی فرمائيل چه الله ﷻ ارشاد فرمائی چه نن زما بنديګان مؤمنان هم سحر پاسی او کافران هم،خوچا چه دا اوونيل دا باران د الله ﷻ د فضل اورحمت په سبب دی نوهغه په ما باندې ايمان راوړلې دې او د ستورو د اثراتومنکر دې او چه کوم دا عقيده لری چه دا باران د ستورو په سبب کيږی نوهغه زمانه کفرکوی او په ستورو باندې ايمان راوړی([1]) اووايه اې پيغمبره!زما حکمت عملی ډيره کارګروی داسې مجرم ګمان کوی چه مونږ ته عذاب دکفرپه وجه نه دې راکړې شوې خوپه حقيقت کښې هغوی سره د ډهيل کار شوې وی او چه کله هغوی په خپل پوره غفلت کښې شی نو يودم به راګيرکړې شی. زمونږ فرښتې د هغوی اعمال ليکی او بيا هغه عالم الغيب ته پيش کولې شی او بيا هغوی د هرې ورې او لوئې ګناه سزا خوری.

بيا ارشاد فرمائی چه الله ﷻ ستاسود اوچې اولمدې دسفر دپاره تاسوله آسانئ راپيداکړې اوپه اوبو کښې دننه هم هغه تاسو په خپله پناه اوحفاظت کښې واخستنی اوچه کله تاسويه کشتوکښې نې هواګانې داکشتئ چلوی نوتاسودهغې په نرم رفتاريا تيزوالې باندې خوشحاليږئ. بالکل د خوشحالئ په وخت دا کشتئ دهوا تيزې چپې راګيرې کړی اود هرطرف نه موجونه وی نو ستاسو دا يقين پيدا شی چه اوس خوهلاک شو نو دې وخت کښې په زارو زارو د الله ﷻ نه دعاګانې غواړئ، دې وخت

[1]) صحيح بخاری کتاب الاذان باب سيتقبل الامام الناس اذاسلم:۸۴۶؛صحيح مسلم:۷۱.

کېنبي تاسو نه یو صنم یاد وي اونه یو بت، لات او هبل، بلکه هم مونږ ته چغې وهني. نو چه کله الله ﷻ تاسو د سمندر غاړې ته صحیح سالم اورسوی نو بیا زمونږ نه مخ اړوني. انسان ډیر ناشکره دې. دلته اوونیلې شو چه ﴿ دَعَوُا اللّٰهَ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ ۚ لَىِٕنْ اَنْجَيْتَنَا ﴾ یعني ډیر مخلص جوړشي رابلل کوي، که ته مونږ له د دې مصیبت نه خلاصې راکړې نو مونږ به ډیر شکر ګذار شو او چه کله هغه دوی ته نجات ورکړې نو به ملك کېنبي هغوی ناحقه شرارت کوی لکه چه په دوی چرې څه مصیبت راغلې نه وو. بیا ارشاد کیږي ﴿ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اِنَّمَا بَغْيُكُمْ عَلٰٓى اَنْفُسِكُمْ ﴾ اې خلقو ستاسو د بغاوت نقصان به په تاسو وی ښه یاد ساتنې چه په بل چا باندې به د دې هیڅ نقصان نه وی. لکه څنګه چه په حدیث شریف کېنبي دی چه د الله ﷻ نه بغاوت او صله رحمی نه کول دوه داسې ګناهونه دی چه په آخرت کېنبي خو به عذاب وی ولې په دنیا کېنبي به هم ډیر زرد دې سزا ملاویږي.[1] په دې نه پاتې کیدونکې دنیاکېنبي ستاسو دپاره دیوڅو ورځو متاع ده بیا ستاسو واپس کیدل هم زمونږ طرف ته دی. اوچه کله زمونږ طرف ته واپس شنې نو ستاسو په ټولو اعمالو به تاسو پوهه کړې شنې. اود دې به پوره پوره بدله درکولې شي. چاته چه ښه بدله ملاوشوې وی نوهغه خو به دالله ﷻ شکر اداکړي اوچاته چه سزاملاوشی هغه به خپل خان ملامت کوی.

| اِنَّمَا مَثَلُ |
|---|
| بیشکه \| مثال |
| اد دنیا د ژوند حال خو بس داسې |

| الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا | كَمَآءٍ | اَنْزَلْنٰهُ | مِنَ السَّمَآءِ | فَاخْتَلَطَ | بِهٖ |
|---|---|---|---|---|---|
| دژوند ددنیا | پشان داوبو دې | چې نازلې کړې مونږه هغه | دآسمان نه | نوګنراوشو | په دې سره |
| دې الکه مونږ دبره نه اوبه راوروو انو دهغې په ذریعه دزمکې نه ګنره سبزی رازرغون شي چې خلق او څاروی | | | | | |

| نَبَاتُ الْاَرْضِ | مِمَّا | يَاْكُلُ النَّاسُ | وَالْاَنْعَامُ ؕ | حَتّٰٓى | اِذَآ اَخَذَتِ الْاَرْضُ |
|---|---|---|---|---|---|
| پیداوار دزمکې | دهغې نه | خوراك كوی انسانان | اوڅاروی | ترهغې پورې | كله چې واغستو زمكې |
| تول ئې خوری \| تر دې چې زمکه ( په ښه شان، خپل رونق ته اورسیده \| اوښائسته شوه | | | | | |

| زُخْرُفَهَا | وَازَّيَّنَتْ | وَظَنَّ | اَهْلُهَآ | اَنَّهُمْ | قٰدِرُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| ښایست خپل | اوښائسته شوه | اوخیال اوکړو | مالکانو دهغې | چې بیشکه هغوئ | قادر دی |
| او مالکانو ئې دا خیال اوکړو \| چې د هغوئ په لاس کېنبي راتلونکې ده \| په دې کېنبي (ناګهانه) | | | | | |

| عَلَيْهَآ ۙ | اَتٰىهَآ | اَمْرُنَا | لَيْلًا | اَوْ نَهَارًا | فَجَعَلْنٰهَا |
|---|---|---|---|---|---|
| په فائده دهغې باند | نو راغې هغې ته | حکم زمونږه | دشپې | یا دورځې | نواوګرځوله مونږه هغه زمکه |
| زمونږ حکم ورته د شپې یا د ورځې اورسیدو \| نوهغه مو داسې سپینه داګه کړه | | | | | |

| حَصِيْدًا | كَاَنْ لَّمْ تَغْنَ | بِالْاَمْسِ ؕ | كَذٰلِكَ | نُفَصِّلُ | الْاٰيٰتِ |
|---|---|---|---|---|---|
| ریبلې شوی | الکه چې نه اوسیدل هیڅوك هلته | پرون | دارنګې | واضحه بیانوو مونږه | ایتونه |
| لکه چې پرون په کېنبي هڅو هیڅ نه وو \| مونږ هم دغسې خپل آیاتونه په تفصیل سره بیانوو\| هغه کسانو ته چې | | | | | |

[1] ابوداؤد کتاب الادب باب فی النهی عن البغی: ۴۹۰۲ وسنده صحیح، ترمذی: ۲۵۱۱، ابن ماجه: ۴۲۱۱، الادب المفرد: ۶۷، حاکم: ۲/۴۵۶، احمد: ۵/۳۶، ابن حبان: ۴۵۵.

| لِقَوۡمٍ | يَّتَفَكَّرُونَ ۞ وَاللّٰهُ يَدۡعُوٓا إِلَىٰ دَارِ السَّلٰمِ ۖ وَيَهۡدِي مَنۡ |
|---|---|
| دپاره دهغه قوم | چي فکر کوي \| اوالله \| رابلي \| کور د سلامتیاته \| اولاره ښائي \| هغه چاته |
| دفکر نه کار اخلي \| او الله (ددري مقابله کښي) دسلامتیا کور ته رابلل کوي \|او چاته چي ئي خوښه شي | |
| يَّشَآءُ | إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسۡتَقِيمٍ ۞ |
| چي اوغواړي هدایت دهغه \| لاري نیغي ته \| | |
| نو په نیغه لار ئي روان کړي \| | |

قوله تعالى:: إِنَّمَا مَثَلُ الۡحَيَوٰةِ الدُّنۡيَا كَمَآءٍ

**د دنیاوی ژوند یومثال:**- ددنیا ظاهري زیب و زینت او آبادي بیا د دې ډیر زر زوال کیدلو مثال الله پاك په راتوکیدلوځیزونوسره ورکوی.دکومو دپاره چه د آسمان نه اوبه راووروی الله ﷻ دزمکي نه راو ویستل کوم چه انسان خوری لکه غله دانه، مختلف قسم میوې او ګلونه چه نه صرف د انسان خوراك بلکه څناور هم د هغې ډکی او سوکي وغیره خوری اوچه کله د زمکې دا سپرلي او ښائست فنا شي اود مختلفوقسمونو اوشکلونو سبزئی په پوره شینوالی سره راشي نو زمیندار او کروندګری دا ګمان کوی چه اوس به فصل پریکړو میوې به راکوزې کړو نو ناڅاپي داسې تندر یا سیلئ راشي چه د ونو تولې پاڼې اوچې شي او اوسوزی میوې ګلونه ختم شی اود دې شینوالی او آبادئي په ځائ هغه یو اوچ شان ډیرې جوړشی لکه چه دا هډو شنه وونه، او کله دا نعمت هډو زمیندار ته ورکړې شوې نه وو. په دې وجه په حدیث کښي دی چه دنیادارو ته نعمتونه ورکولې شی بیا دوی په اور کښي د ګناه په وجه واچولې شی اوتپوس ترې اوکړئي چه کله تاسو ته راحت ملاؤشوې هم وو؟ نوهغه به وائي چه هیڅ کله نه. یو بل سړې به وی چه په دنیاکښي لوئ لوئ تکلیفونه اوچت کړې وی بیا هغه جنت ته لیګلي شي او تپوس ترې کیږی چه آیا تاته چرته څه تکلیف رسیدلې وو؟ نو وائي به چه هیڅ کله هم نه[1]الله ﷻ د دې هلاکیدونکو باره کښي فرمائي چه هغوی په خپلو کورونوکښي داسې برباد شولکه چه چرې اوسیدلې نه وو.بیاارشاد کیږی ﴿كَذَٰلِكَ نُفَصِّلُ الۡأٓيَٰتِ﴾یعنی مونږ خبره داسې کولاو او واضح دلیل او حجت سره پیش کوو دې د پاره چه خلق د دې خبرې عبرت حاصل کړی چه دنیا ډیره په تیزئی سره په زوال ده. په دنیا باندې د قادرکیدو سره هغوی سره دهوکه کوی څوك چه د دې طرف ته وراندې کیږی هغه ترې تختی او څوك چه د دې نه تختی د هغوی په پښوکښي پریوځی.الله پاك د دنیا مثال د زمکي د بوټوسره په سورة کهف کښي په بل آیت کښي هم ورکړې دې ارشاد دې ﴿وَاضۡرِبۡ لَهُم مَّثَلَ الۡحَيَوٰةِ الدُّنۡيَا كَمَآءٍ﴾ د دنیا د ژوند مثال دنازل شوی باران په شان دې چه د بوټو نه وراندې اوآبادیدو نه پس بیا یو وخت داسې راغلو چه هغه بوټي د اوچو وابښو په شان شو کوم چه هوا اخوادیخوا الوزوی.الله ﷻ خو په هرڅیز باندې قادر دې. په سورة زمر او حدید کښي هم داسې بیان شوې دې.

**د اسلام او جنت مثال::**خلیفه مروان بن حکم په منبرباندې دا لوستونکي اولیدې شو چه زمکه کله آباده شوه او زمیندار دا اوګنړل چه اوس به فصل پریکړو خو ټول فصل برباد شی اودا ټول هلاکت د هغه د ګناهونو او بغاوت په سبب کیږی.

اود الله ﷻ ارشاد دې ﴿وَاللّٰهُ يَدۡعُوٓا إِلَىٰ دَارِ السَّلٰمِ﴾ کله چه الله ﷻ د دنیا د تیز زوال اود جنت د ترغیب ذکر اوکړو نو اوس دجنت طرف ته رابلل کوی اوجنت ته دارالسلام وائی. یعنی هغه د هر تکلیف مصیبت او

[1] صحیح مسلم: کتاب صفات المنافقین باب صبغ انعم اهل الدنیا فی النار صبغ اشدهم بؤسا فی الجنة:۲۸۰۷.

خفګان نه د پناه ځای دی. حضور ﷺ فرمائي چه ستا سترګي خو په ظاهره اودي دي خو ستا زړه ویښ وی اوستا غوږونه اوري. نو زما سترګي خو په ربښتیاسره اودي شوي او په زړه کښي بیدار ووم. غوږونه مي کولاو وونو بیا ماته اوونیلي شو چه یومالدار یو کور جوړکړو، خلقوته ئي دعوت اوکړو، خلقو ته ئي دعوت نامي اولیګلي نو چه څوك راغله نو هغوی خو ښه په مړه خیټه اوخوړله، رابلونکي هم خوشحاله شو.او چا چه دعوت قبول نه کړو نه هغه راغلواونه ئي څه اوخوړلي شواو نه دعوت ورکونکي خوشحاله شو. هم الله ﷻ هغه دعوت ورکونکي دي او هغه کور اسلام دي او دسترخوان جنت دي او پیغام رسونکي محمد ﷺ دي.

دحضرت جابر بن عبدالله ؓ نه روایت دي رسول الله ﷺ مونږ له تشریف راوړو اوونی فرمائیل ما په خوب کښي اولیدل چه جبرائیل ؑزما سر ته دي، میکائیل ؑ زما پښوطرف ته دي. اویو بل ملګری ته وائي چه په دي اوده باندي یومثال بیان کړه. نو بل اوونیل اي اوده کیدونکیه ستا غوږونه اوری ستا زړه پوهیږي. ستا او ستا د امت مثال داسي دي لکه چه یو بادشاه یوکور جوړکړي وي او په هغي کښي یوه لویه کمره وي او په هغي کښي خوراکونه کیخودي وي بیائي قاصد اولیګلو او خلق ئي د خوراك د پاره راوبلل. څوك راغله او څوك رانغله نو هغه بادشاه الله ﷻ دي هغه کور اسلام دي او کمره جنت دي او ته اي محمد ﷺ هغه قاصد ئي. چه څوك راغله هغه په اسلام کښي داخل شوي وو او چه څوك داخل اسلام شو هغه داخل جنت شو اوپه جنت کښي داخل شوي سړي د دعوت نه فیض یاب شو[1] حضرت محمد ﷺ فرمائیلي چه کله نمر راخیژی نود دي دواړوطرفوته فرښتي وي او آواز ورکوي چه دپیریانو اوانسانانو نه علاوه ئي ټول اوری هغوی‌وائي اي خلقو د الله ﷻ طرف ته راشئ. چه کم ملاوشي اوپوره شي نو هغه ښه دی د هغه زیات نه چه د الله ﷻ نه دي غافل کړی.[2]

| | لِلَّذِيْنَ | اَحْسَنُوا |
|---|---|---|
| | ا دپاره دهغه کسانوا چي نیکه لار ئي اختیارکړه | |
| | کوم کسان چي نیکان دی د هغوی دپاره | |

| الْحُسْنٰى | وَزِيَادَةٌ | وَلَا يَرْهَقُ | وُجُوْهَهُمْ | قَتَرٌ | وَّلَا ذِلَّةٌ | أُولٰٓئِكَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ښه بدله ده | اوزیات فضل | اونه به راخوریږی | په مخونو دهغوی باندا | رسوانی | اونه ذلت | دا کسان |

ښکلي بدله ده| او د الله دیدار په کښي لا زیاتي هم دي| دهغوی په مخونو به نه تیاره راخوریږی او نه ذلت

| أَصْحٰبُ | الْجَنَّةِ | هُمْ | فِيْهَا | خٰلِدُوْنَ ﴿۲۶﴾ |
|---|---|---|---|---|
| صاحبان د | جنت دی| | هغوی به | | په هغي کښي| | همیشه اوسیږی| |

دغه خلق جنتیان دی ||وهمیشه به په دي کښي اوسیږی |

قوله‌تعالی:: لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوا الْحُسْنٰى وَزِيَادَةٌ

**دنیکو بدله د جنت په شکل کښي** :- الله ﷻ فرمائي چه چا نیك اعمال اوکړه هغه ته به په آخرت کښي ښه بدله ملاویږی خکه چه دنیکئ بدله نیکی ده بلکه څه نوره هم زیاته ده. یعنی کم نه کم لس چنده

---

[1] ترمذی کتاب الادب باب ماجاء فی مثل الله وعزوجل لعباده: ۲۸۶۰، وهوصحیح او متصلاً صحیح بخاری کتاب الاعتصام باب الاقتداء بسنن رسول الله ﷺ:۷۲۸۱کښي موجود دي.

[2] احمد:۱۹۷/۵،مسندالطیالسی:۹۷۹.

بلکه د دې نه څه لرنور زیات چه د الله ﷻ په نورو ورکړو مشتمل ده. لکه په جنت کښې حورې غلمان، د الله ﷻ خوشحالي اوداسې داسې د زړه خوشحالي چه تراوسه پورې پته ده.اود دې ټولونه زیات د الله ﷻ دیدار داد ټولو مزو او مهربانونه زیاته مهرباني ده. هغوی به دخپل عمل په سبب ددې حقدار نه وی بلکه صرف د هغه په فضل او مهربانئ سره.

**جنتیانو ته به دجنت نه علاوه د الله ﷻ دیدار هم نصیب شي ::** دحضرت صهیب ﷺ نه روایت دې چه حضورﷺ دا دزیاتوالی آیت تلاوت کړوچه کله جنتیان او دوزخیان خپلو خپلو ځایونوته اورسی نو یو آوازکونکې به وائی چه اې جنتیانو تاسو سره د الله ﷻ وعده ده هغه پوره کول غواړې نو هغوی به وائی چه اوس کومه وعده؟ په تله د میزان کښې زمونږ وزن درووند شو زمونږ مخونه روښانه کړې شو، مونږ ته د دوزخ نه خلاصې راکړې شو نو ناڅاپې به د هغې نه پرده اوچته کړې شي اودهغوی نظر به په الله ﷻ باندې پریوځی.د الله ﷻ قسم د دې نه لویه ورکړه به دجنتیانو دپاره بله نه وی دابه دسترګو د یخوالی اودزړه دتسکین دپاره دټولونه لوئی څیز وی[1]په مختلفو احادیثوکښې دی چه ﴿زِيَادَةٌ﴾ نه مراد د الله ﷻ دیدار دې.الله ﷻ فرمائی چه ﴿ وَلَا يَرْهَقُ وُجُوهَهُمْ قَتَرٌ وَلَا ذِلَّةٌ ﴾ یعنی د حشر په میدان کښې به د هغوی مخونه بې رونقه نه وی نه به د سیاهئ په شان تور وی لکه چه د کافرانو مخونه به د تورو دوروغوندې وی. لعنت به پرې وریږی. او جنتیانوته به ظاهري او باطني هیڅ قسم ذلت نه ورنصیب کیږی. بلکه الله ﷻ د هغوی په حق کښې فرمانیلی دی ﴿فَوَقٰهُمُ اللّٰهُ شَرَّ ذٰلِكَ الْيَوْمِ﴾ یعنی الله ﷻ به هغوی د هغه ورځې د شر نه بچ کوی د هغوی مخونه به سره بخن او زړون خوشحاله وی. الله ﷻ دې مونږ د داسې خلقو نه په خپل فضل او رحم سره اوګرځوی. آمین.

وَالَّذِيْنَ كَسَبُوا

او هغه کسان | چې کسب نې اوکړو

او چا چه ګناهونه کړې وی | نو د ګناه سزا به

السَّيِّاٰتِ جَزَآءُ سَيِّئَةٍۭ بِمِثْلِهَا وَتَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ مَا لَهُمْ

دبدو | نوبدله | دبدئ | په قدر دهغې ده | اوخور به وی په هغوئ باند | ذلت | نه به وی دهغوئ دپاره

بده وی | اوذلت به پرې راخور شي | او هیڅوک به نې داللهﷻ د عذاب نه بچ نه کړی

مِّنَ اللّٰهِ مِنْ عَاصِمٍ كَاَنَّمَآ اُغْشِيَتْ وُجُوْهُهُمْ قِطَعًا مِّنَ الَّيْلِ

دالله نه | څوك بچ کونکې | لکه چې | راخوره شوی وی | په مخونودهغوئ باند | ټوټه | دشپې نه

دهغوئ په مخونو باندې داسې تیرې خورې ښکاری | لکه چې د تورې شپې ټوټې پرې راخورې

مُظْلِمًا أُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ

توره | دا کسان | صاحبان دوور دی | هغوئ به | په هغې کښې | همیشه وی |

شوې وی | هم دغه خلق دوزخیان دی | همیشه به په کښې (لوغړن) پراته وی |

**قوله تعالی:: جَزَآءُ سَيِّئَةٍۭ بِمِثْلِهَا**

**دبدو بدله د دوزخ په شکل کښې:-** کله چه الله ﷻ د دې نیك بختانو متعلق خبر ورکړو دهغوی د نیکو

[1] صحیح مسلم کتاب الایمان باب اثبات رؤیة المؤمنین فی الآخرة ربهم سبحانه وتعالی:١٨١، احمد:٤/٣٣٣، ترمذی:٢٥٥٢

بدله ورکړې شوه چه زیاتولې به شي.نو اوس د بدبخت ګناهګارانواومشرکانوحال بیانولې شي.چه
هغوی سره به انصاف کولې شي.د هغوی د ګناهونو سزا به زیاتولې نه شي بلکه برابر به وی. په هغوی
به د هغوی د ګناهونو ذلت راخور وی. فرمانی چه کله هغوی پیش کیږی نو تاسو به هغوی شرمنده او
ذلیل ګورئی اودا مه ګڼرئی چه الله ﷻ د دې ظالمانو د اعمالونه غافل دې. د قیامت د ورځې پورې د
هغوی په عذاب ورکولو کښې تاخیر ورکړې شوې دې. دوی د الله ﷻ نه بچ کونکی اوسفارش کونکی
څوک نشته. په هغه ورځ به انسان وائی چه چرته اوتختو خو هغوی به هیڅ کله نه شي پریخودې. د الله
ﷻ په وړاندې به هغوی له راتلل وی. د هغوی مخونه به داسې تور وی لکه چه د تورې شپې څادردې د
هغوی په مخونو راخورکړې دې. په هغه ورځ په بعضې مخونه تور وی او بعضې روښانه. د چا مخونه
چه تور وی هغوی ته به وئیلې شی آیا د ایمان راوړلو نه پس هم تاسو کفر کړې وو. اوس د خپل کفر مزه
اوڅکئې.اودچامخونه چه روښانه وی هغوی به دالله ﷻ په رحمت کښې وی اودهمیشه همیشه د پاره به
وی.دبعضو مخونه به روښانه په خندا اوروښانه روښانه وی اود بعضو به مخونوبه خفګان او تیاره وی.

وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ثُمَّ نَقُولُ لِلَّذِينَ أَشْرَكُوا

اوپه کومه ورځ چی راجمع کرومونږه | تول | بیا به اووایو مونږه | هغه کسانوته | چی شرک ئې کړې دې |

او په کوم ورځ چې مونږ دوئ ټول رایوځائې کړو انو مشرکانو ته به اووایو اچې تاسو ا و ستاسو (

مَكَانَكُمْ أَنتُمْ وَشُرَكَاؤُكُمْ فَزَيَّلْنَا بَيْنَهُمْ وَقَالَ

ودریږئ په خپل ځائې| تاسو | اوشریکان ستاسو | انولرې په کړونا آشناوالې|په منځ دهغوئ کښې| اواوبه وائی

جوړکړې)خدایان په خپل ځائې اودریږئ انو بیابه د دوئ تر مینځه جدائی راولو| اودهغوئ (جوړ کړې)

شُرَكَاؤُهُمْ مَّا كُنتُمْ إِيَّانَا تَعْبُدُونَ فَكَفَىٰ بِاللَّهِ

شریکان دهغوئ| چی نه وئ تاسو| چی خاص مونږ لره| به عبادت کوئ تاسو| نو کافی دې | الله |

شریکان به ورته اووائی اچې تاسو خو زمونږ عبادت هیڅکله نه کولو |الله زمونږ او ستاسو په مینځ کښې

شَهِيدًا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ إِن كُنَّا عَنْ عِبَادَتِكُمْ لَغَافِلِينَ

په لحاظ دګواهۍ سره|په منځ زمونږ|اوپه منځ ستاسو کښې |بیشکه وو مونږه |دعبادت ستاسو نه| بالکل ناخبره

ګواه کافی دې چې مونږ خو ستاسو دعبادت نه خبر هم نه وو | نو په دغه وخت کښې به هر سړې دخپل عمل اندازه

هُنَالِكَ تَبْلُوا كُلُّ نَفْسٍ مَّا أَسْلَفَتْ

په دغه وخت کښې به | (جاج واخلی) مزه اوڅکی | هرانسان | دهغه څه | چی مخکښې ئې کړی وی

اولګوی | چې دځان نه مخکښې ئې څه لیږلي وو |او ټول به خپل حقیقي مولی ته واپس کړې شی |

وَرُدُّوا إِلَى اللَّهِ مَوْلَاهُمُ الْحَقِّ وَضَلَّ عَنْهُم مَّا كَانُوا

اوواپس به کړې شی | الله ته | مالك ددوئ | حق ته | اوورك به شی | ددوئ نه | هغه | چی وو دوئ

کوم معبودان چې ئې دځان نه جوړ کړی وو| هغه ټول به ترې ورک شی

يَفْتَرُونَ ع

چی دځانه به ئې جوړول |

قوله تعالى: وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا

**د قیامت په ورځ دټولو ورانديې روستو مشركانو اود هغوی د معبودانوحالت د الله ﷻ په عدالت كښې :-**

د الله ﷻ قول دې پيريان انسانان نيك اوبدټول به مونږ دقيامت په ورځ راولواوحاضربه ئې كړو هيڅ څوك به نه شي پريخودې اومشركانوته به وايو چه تاسو اوستاسوشركاء په خپلو خپلو ځايونو اودريږئ اود مؤمنانو نه جدااوسيږئ.اوپه كومه ورځ چه قيامت وى دادواړه قسم خلق به جداجداوى. دا به هغه وخت وى چه كله الله ﷻ د مقدماتود فيصلې اراده اوكړى. ددې د پاره ونيلى شوى دى چه مؤمنان به الله ﷻ ته درخواست كوى چه زردې دمقدماتوفيصله اوكړې شى اومونږته دې د انتظارد ګهړئ نه بښنه راكړې شى.حضورﷺ فرمائيل چه د قيامت په ورځ به مونږ خلق د نورو خلقو نه په اوچت ځای باندې يو.(۱) الله ﷻ به فرمائى اې مشركانوتاسو اوستاسو معبودان دچا چه تاسوعبادت كولو په خپل خپل ځای جدا جدا شئ.دې متقدمينو شركاو ددې خبرې نه انكاركړې ووچه دوی به دهغوی نه خپل عبادت غوښتلو الله ﷻ فرمائى چه د كومويزرګانو دوی عبادت كوی او هم په دې بنياد باندې ئې هغوی د الله ﷻ سره شريك ګنړل اوشريكان ئې جوړكړې وو چه د قيامته پورې د هغوی د رابللو جواب نه شى وركولې اود هغوی دعا اوريدې هم نه شى او چه كله خلق د قيامت په ورځ اوچتولې شى نو هغوی به پخپله د خپل عبادت كونكو دښمنان وى او وائى به چه مونږ ته خوددوی د عبادت كولو هيڅ علم نشته. تاسو به زمونږ عبادت كړې وى خو مونږ ته خوپته هم نشته اود دې خبرې الله ﷻ ګواه دې. مونږ خو تاسوته چرې هم نه وو ونيلى چه زمونږ عبادت كونې.دغه شان دمشركانو خلې بندكړې شى چه نه اورى نه ګورى اونه په څه كار راتلې شى. ددوی تاسو عبادت ولې كولود دوی خونه مرضى وه او نه اراده وه.تاسو خو دحى او قيوم،بصيراوسميع عبادت پريخودې وو او چه دهرې خبرې عالم اوقادر دې. چاچه خپل رسول او كتاب صرف په دې غرض ليګلې وو چه صرف هم دهغه به عبادت كولې شى. لكه چه فرمائى په هرقوم كښې زمونږ رسول زمونږ د عبادت ترغيب وركونكې اودباطل عبادت نه منع كونكې راغلو. اوس چه چاهدايت بيامونداونوبيائى مونداوچه څوك ګمراه شونوبس ګمراه شو.تانه دوراندې رسولانو نه به تپوس كووچه آياتاسو زما نه سوا د بل چا د عبادت كولو حكم وركړې وو.دمشركانو ډير قسمونه دى الله ﷻ په خپل كتاب كښې دهغوی ذكر كړې دې اودهغوی اقوال او احوال بيانولو سره ئې د هغوی ترديد كړې دې. حكم كيږى چه د قيامت په ورځ به دحساب په وخت كښې د هريو ازمينبت كيږى او چه ښه او بد هرڅه عمل ئې كړې دې مخامخ به راوړلې شى. په هغه ورځ به ټول رازونه ښكاره كړې شى.اوانسان له به خپل وراندينى روستونى ټول ګناهونه ښكاره كول وى.دقيامت په ورځ به دهغوی عمل نامه مخامخ راوړلې شى او ونيلې به شى چه اولوله خپله عمل نامه دې وخت كښې ته د خپل ځان د حساب كتاب دپاره كافى ئې.ازمينبت به كيږى ترجمه وه(هُنَالِكَ تَبْلُوا كُلُّ نَفْسٍ مَّا أَسْلَفَتْ)دې كښې د (تَبْلُوا) خوبعضې خلقو دا(تتلوا) لوستلې دې د كوم معنى چه لوستل دى.بيا به د دې ترجمه دا وى چه ښه ياخراب كوم كارهغوی كوى هم دهغې نتيجه به زغمى.لكه څنګه چه په حديث كښې دى چه هر امت به دخپل خپل معبود شاته وى. دنمرعبادت كونكى نمرپسې اودسپوږمئې عبادت كونكى سپوږمئې پسې اوبت پرست به د بتانو شاته(۲) د الله ﷻ قول دې (وَرُدُّوا إِلَى اللَّهِ مَوْلَاهُمُ الْحَقِّ) هغوی به خپل مولا الله ﷻ طرف ته اوګرځولې شى. آيا د هغوی ټولو امور به د الله ﷻ طرف ته ګرځولې شى؟ چه فيصله اوكړى نو جنتيان جنت ته اودوزخيان به دوزخ ته ليګى. اوس چه دې ګمراهانو د خپل طرف نه د دروغو مروغو خدايان جوړكړې وو ټول به د هوا په شان والوزى.

۱) صحيح بخارى كتاب التوحيد باب قول الله تعالى(كلم الله موسى تكليما):۷۵۱۶،۸۷۵۱۶، صحيح مسلم:۱۹۳.
۲) صحيح بخارى كتاب التوحيد باب قول الله تعالى (وجوه يومئذ ناضرة...):۷۴۳۷، صحيح مسلم: ۱۸۴.



| |
|---|
| قُلْ مَنْ يَّرْزُقُكُمْ مِّنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ |
| اووایه \| څوک \| رزق درکوی تاسو له \| دآسمان نه \| اودزمکې نه |
| ورته اووایه چې څوک تاسو ته د پورته او د زمکې نه روزی درکوی |
| اَمَّنْ يَّمْلِكُ السَّمْعَ وَالْاَبْصَارَ وَمَنْ يُّخْرِجُ الْحَيَّ |
| یا څوک دي هغه \| چې اختیار لري \| دطاقت داوریدو \| او د طاقت دلیدو \| اوڅوک دي \| چې راوباسي ژوندي |
| یا څوک دي چې ستاسو دغوږونو او د سترګو مالک دي \| او څوک دي چې د مړي نه ژوندي راوباسي |
| مِنَ الْمَيِّتِ وَيُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ وَمَنْ يُّدَبِّرُ الْاَمْرَ |
| دمړي نه \| اوراوباسي مړي \| دژوندي نه \| اوڅوک دي هغه \| چې انتظام کوی \| دهرکار |
| او د ژوندي نه مړئي راؤباسي \| او څوک دي چې د هر کار انتظام کوي \| نو دوی (به جواب کښې) |
| فَسَيَقُوْلُوْنَ اللّٰهُ فَقُلْ اَفَلَا تَتَّقُوْنَ فَذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمُ |
| نو ضرر به وائي دوی \| چې الله \| نو اووایه اے نبی \| آیا نو نه یریږئ تاسو \| نو دغه الله \| رب ستاسو دي |
| اووائی \| چې (داهر څه) الله ﷻ کوی \| ورته اووایه چې بیا ولې دشرک نه ځان نه ساتئ \| نو هم دغه ستاسو |
| الْحَقُّ فَمَاذَا بَعْدَ الْحَقِّ اِلَّا الضَّلٰلُ فَاَنّٰى تُصْرَفُوْنَ كَذٰلِكَ |
| حقیقي \| نو څه دی \| اروستو دحق نه \| مګر ګمراهي ده \| نوکوم طرفته \| ګرځولي کیږئ تاسو \| دارنګې |
| حقیقي پروردګار دي \| نو د حق نه پس نور څه پاتي شو ابغیر د ګمراهي نه \| آخر دا تاسو په کوم اړخ روان یئ |
| حَقَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ عَلَى الَّذِيْنَ فَسَقُوْٓا اَنَّهُمْ |
| حقه ثابته شوه \| خبره \| درب ستا \| په هغه کسانویاند \| چې نافرماني ئې کړی ده \| چې بیشکه هغوئ |
| هم دغه ستاسو دپروردګار خبره \| د تولو فاسقانو په حق کښې پوره شوې ده \| چې دوی به ایمان نه |
| لَا يُؤْمِنُوْنَ |
| ایمان نه راوړی هیڅکله \| |
| راوړی \| |

**قوله تعالی: فَسَيَقُوْلُوْنَ اللّٰهُ**

مشرکانوبه الله ﷻ خالق مالک او رازق منلو.- په مشرکانوباندې الله ﷻ حجت پیش کوی چه د الله ﷻ د وحدانیت او ربوبیت اعتراف به ورته کول وی. یعنی ای نبی ﷺ تپوس اوکړه هغه څوک دې چه د آسمان نه باران راوروی او په خپل قدرت سره زمکه شلوی د کومې د دننه نه چه د دانووالا انګور،زیتون خرما اوګنګر باغونه اود غونچووالا میوې راپیدا کوی. آیا هغه سره بل یو الله کیدې شی نو دوی به دا منی چه دا هم د الله ﷻ کارونه دی. که هغه خپل رزق بند کړی نو څوک دی چه هغه کولاؤ کړی. او چاچه د اوریدوطاقت او دلیدو طاقت ورکړې دې او هغه واخلی نو ته پخپله اووایه چه دا اوریدلو اوکتلو او تول انسانی قوتونه هم الله ﷻ پیداکړی دی. آیا ته به هغه خفه کول خوښ کړې چه ستا دا لیدل او اوریدلو طاقت واخلی.څوک چه په خپل عظیم قدرت سره دمړی نه ژوندې پیداکوی اودژوندی نه مړی راپیدا کوی. ددې آیت باره کښې اختلاف رائې اول تیره شوې ده. اوددې آیت مفهوم په تولو عام او

حاوي دي. اوچا د ټول کائنات انتظام پخپل لاس کښې اخستې دې چه څه هم کيږي د هغه په اختيار او مرضئ سره کيږي. ټولو ته هغه پناه ورکوي او څوك د هغه خلاف چا ته پناه نه شي ورکولې. هغه ټولو باندې متصرف اوحاکم دې اود هغه دحکم نه پس د چا حکم هيڅ څيز نه دې. هغه چه د چا نه غواړي تپوس کولې شي او څوك دی چه د هغه نه تپوس اوکړې شي. د اسمان او زمکې ټول مخلوق د هغه د قدرت د لاس لاندې دی. هروخت د هغه يو عجيبه شان دې.د آسمان اوزمکې ټوله بادشاهي هم د هغه ده. ملائکې پيريان اوانسانان ټول د هغه محتاج دی اود هغه غلامان دی. دټولو جواب د هغه سره هم دغه دې چه هم په الله ﷻ کښې دا ټول قدرت دې. کافران او مشرکان ددې ټولو خبرو نه خبر دی اودا مني هم. نو بيا ته د هغوی نه تپوس اوکړه چه ولې دهغه نه نه ويريږئ. پخپله خودسرئ اوجهالت باندې مو هغه پريخودې اود بل چا عبادت کوئ. رښتوني الله خو هم دغه الله دې د چا چه تاسو پخپله اعتراف کوئ.نوبيا خوځان له دعبادت حقدار هم هغه دې. په حق خبره د پوهيدلونه پس داګمراهي د څه خبرې. دهغه نه سواهريو معبود باطل دې. تاسوحق عبادت پريخودې اود ماسوا په عبادت کښې چرته ټکرې وهئ.د دې ټولو دليلونونه پس دالله ﷻ خبره ثابته اومتحقق شوې ده. يعنې څنګه چه دې مشرکانوکفر اوکړو اوپه کفرباندې قايم پاتې وو دغه شان هغوی ددې خبرې اعتراف هم کړې چه هم هغه پاك پروردګار خالق او رزاق دې په ټول کائنات کښې يوازې متصرف دې هم هغه خپل پيغمبر ﷺ ته توحيد ورکړې راليګلې دې. دا مسلمان دې او دا بدبخته دوزخي دې.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قُلْ | هَلْ | مِنْ شُرَكَآئِكُمْ | مَّنْ | يَّبْدَؤُا |
| اووايه | ايا شته | دشريکانوستاسونه | هغه څوك | چې په اول خل |
| ورته اووايه چې ستاسو په (جوړوکړو) شريکانو کښې څوك هم داسې شته | | | | چې په ړومبي |
| الْخَلْقَ | ثُمَّ | يُعِيْدُهٗ ؕ | قُلِ | اللّٰهُ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ |
| پيداکول هم کوي | ابيا | دوباره هم پيداکوی هغه | ورته اووايه | چې الله په اول خل پيدا کول هم کوي بيا |
| خل (يو څيز) پيدا کړی اوبيا ئې سردوباره ژوندې کړی اورته اووايه چې الله ﷻ په اول خل پيدا کوی | | | | |
| يُعِيْدُهٗ | فَاَنّٰى | تُؤْفَكُوْنَ ۝ | قُلْ | هَلْ مِنْ شُرَكَآئِكُمْ |
| دوباره هم پيدا کوی هغه | نوکوم طرفته | اړول شوی يئ تاسو | اووايه | ايا شته دشريکانو ستاسو نه |
| اودوباره هم | دا تاسوکوم طرفته اړولې روان يئ | ورته اووايه چې ايا ستاسو په (جوړو کړو) | | | |
| مَّنْ | يَّهْدِيْٓ | اِلَى الْحَقِّ ؕ | قُلِ | اللّٰهُ يَهْدِيْ لِلْحَقِّ ؕ |
| هغه څوك | چې ښودنه کوی | طرف دحق ته | ورته اووايه | چې الله ښودنه کوی دپاره دحق |
| شريکانو کښې څوك هم شته | چې د حق په لار خلق روان کړی | ورته اووايه چې هم الله ﷻ دحق | | |
| اَفَمَنْ | يَّهْدِيْٓ | اِلَى الْحَقِّ | اَحَقُّ | اَنْ يُّتَّبَعَ اَمَّنْ |
| ايانو هغه څوك | چې ښودنه کوی | طرف دحق ته | زيات مستحق دی | چې پيروی ئې اوکړې شي ايا هغه څوك |
| سمه لار ښائی | څوك چې حقه لار ښائی هغه زيات حقدار دې | | چې دهغه پيروی اوشي | که نه هغه څوك |
| لَّا يَهِدِّيْٓ | اِلَّآ | اَنْ يُّهْدٰى ۚ | فَمَا | لَكُمْ ۫ كَيْفَ |
| چې پخپله هم لار موندلې شي | مګر | چې ورته لاراوښودلې شي | نوڅه شوی دی | تاسولره داڅنګه |
| چې پخپله هم لار نه مومی | ترڅو چې ورته اونه خودلې شي | | نودا په تاسو څه شوی دی | څنګه (اړولې) |

| تحکمون۞ | وَمَا يَتَّبِعُ | اَكْثَرُهُمْ | اِلَّا ظَنًّا | اِنَّ الظَّنَّ | لَا يُغْنِيْ |
|---|---|---|---|---|---|
| نيصلې كوئ تاسو | اونه كوي پيروي | اكثر خلق ددوئ | مګر | دګمان | بيشکه | ګمان | نه پوره كوي ضرورت |

نيصلې كوئي | او په دوئ كښې زيات خلق خو خپلو ګمانونو پسې روان دي | او بيشکه ګمان دحق

| مِنَ الْحَقِّ شَيْئًا | اِنَّ اللّٰهَ | عَلِيْمٌ | بِمَا | يَفْعَلُوْنَ۞ |
|---|---|---|---|---|
| دحق نه | هيڅ قدرله | بيشکه الله | ښه پوهه دي | په هغه څه | چې دوئ ئې كوي |

په مقابله كښې هيڅ فائده نه وركوي | الله ﷻ ددوئ د كارونو نه خبر دي |

**قوله تعالى:: قُلِ اللّٰهُ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ**

**خالق اومالک دالله ﷻ ذات دي:-** مشركانو دالله ﷻ سره غيرالله يوځائ كړو اود بتانو عبادتونه ئې شروع كړل دهغوی د دي دعوي ابطال كولې شي. اي نبي ﷺ! دوی ته اووايه چه ستاسو په مقررشوو خدايانو كښې څوك شته چا چه دا آسمانونه اوزمكې پيداكړې وي. بيا چه پدې كښې كوم مخلوقات دي هغوی نه ئې وجود وركړې وي. ياد آسمان ستوری د خپل ځائ نه اخواكړي يا هغه بدل كړي يا هغه فناكړي بيادنوی سرنه بل مخلوق پيدا كړې شي.اووايه چه تاسو چاته نه شئي پيش كولې داخو هم د الله ﷻ كارونه دي نو بيا تاسو دا نيغه لارولې پريږدئي او د باطل طرف ته تكړې خورئي.آيا څوك شته چه د حق طرف ته لارخودنه اوكړې شي داسې لار خودنه خو صرف الله ﷻ كولې شي. په دي خبره تاسو پخپله پوهيږئي چه ستاسوشريكان يوكس هم په نيغه لارنشي راوستلې.هم الله ﷻ داسې حيران اوګمراه ته هدايت كولې شي اودګمراهئي نه دهدايت طرف ته دانسانانوزړونه راګرځولې شي.كه يوبنده دحق طرفته راګرځونكې اتباع اوكړي اودعقل نه كاراخلي نودامعلومه شوه چه دهيڅ هم هدايت نه شي كولې بلكه دخپل روندتوب په وجه ددې خبرې محتاج دي چه هم دده لاس څوك اونيسي اوروان ئې كړي.

**شريک سره په خپل شرک باندې هيڅ يقيني دليل نه وي:** ابراهيم ﷺ فرمائيلي وو چه اي بابا! ته د روند كوڼ معبود عبادت ولې كوې چه ستا د هيڅ كار نه دې. او خپل قوم ته ئې هم فرمائيلي وو چه تاسوخلق هم د خپل لاس جوړ شووڅيزونوعبادت پخپله كوئې. سره د دې چه تاسو او ستاسو معبودان ټول هم الله ﷻ پيداكړي دي. ستاسو رائې خومره غلطه ده. ستاسو عقلونه چرته تلي دي. تاسو الله ﷻ اود هغه مخلوق څنګه يو شان برابر برابر كړل.داهم منئ او هغه هم منئ. اوبيادالله ﷻ نه اخوا شريكانوته تيتيږئي.دخاص رب جليل عبادت ولې نه كوئې چه دهغه عبادت اوكړئي اودګمراهونه بهر راوځئي.اودعاګانې خاص دالله ﷻ نه ولې نه غواړئي. داخلق يو دليل په كار كښې نه راولي بلكه د دې بت پرستئي بنياد د يو يقين په ځائ په ګمان او وهم باندې راوچت كړې دې خود دې نه به هيڅ هم حاصل نه شي. الله ﷻ دهغوی، په هر كارباندې ښه خبردار دې. داد دې كافرانو د پاره تهديد اوسخت وعيد دې څكه چه الله ﷻ خبروركوي چه ډير زر به دوی ته د دې خپل كم عقلتوب سزا ملاؤ شي.

| هٰذَا الْقُرْاٰنُ | وَمَا كَانَ |
|---|---|
| دا قران | اونه دي |

او دا قران څه داسې كتاب نه دي

| بَيْنَ يَدَيْهِ | الَّذِيْ | تَصْدِيْقَ | وَلٰكِنْ | مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ | اَنْ يُّفْتَرٰى |
|---|---|---|---|---|---|
| مخكښې ددنه راغلي وو | دهغه څه چې | تصديق كونكې دي | ليكن | د الله نه | چې جوړكړي شي اغير |

چې دالله ﷻ نه سوا بل څوک دې په دورغه جوړ كړي | بلكه د پخوانو كتابونو تصديق كوي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَتَفْصِيلَ الْكِتٰبِ | لَا رَيْبَ | فِيهِ | مِنْ | رَّبِّ | الْعٰلَمِينَ ۞ |
| اوتفصیل دي دکتاب | نشته هیڅ شك | په دي کښي | چي دي دطرفه | دپروردګار | دکائناتونه |

او د کتاب تفصیل ښائي |په دي کښي هیڅ شک شبه نشته |د ټول مخلوق د پروردګار دطرفه راغلي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَمْ يَقُولُونَ | افْتَرٰىهُ | قُلْ | فَأْتُوا | بِسُورَةٍ | مِّثْلِهِ |
| ایا وائي داخلق | چي دخان ني جوړکړي دي دا قرآن | ورته اووایه | نوراوړئ | یو سورت | پشان ددي |

دي |ادوئ وائي چي دا(کتاب) ده په دروغه جوړ کړي دي |ورته اووایه چي ښه ده نو د دي پشان یو سورة

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَادْعُوا | مَنِ | اسْتَطَعْتُمْ | مِّنْ دُونِ اللّٰهِ | إِنْ كُنْتُمْ | صٰدِقِينَ ۞ بَلْ |
| اوراغواړئ | هغه څوك | چي طاقت کیږي ستاسو | غیرد الله نه | که چري یئ تاسو | صادقان | بلکه |

تاسوهم(جوړ کړئ) او دالله ﷻ نه سوا هرڅوک چي (مددله) راغوښتي شئ هغه راوبلئ |که تاسو رښتوني یئ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| كَذَّبُوا | بِمَا | لَمْ يُحِيطُوا | بِعِلْمِهِ | وَلَمَّا يَأْتِهِمْ |
| دروغ اوګڼړو دوئ | هغه څیز | چي چاپیره نه شو دوئ | په علم دهغي باند | اولا نه دي راغلي دوئ ته |

نه بلکه دوئ هغه څیز (هیڅ بي هیڅه) دروغ اوګڼړه | چي دوئ دهغه په علم باندي پوهه نه ده راوستي | او ددي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| تَأْوِيلُهُ | كَذٰلِكَ | كَذَّبَ | الَّذِينَ | مِنْ قَبْلِهِمْ | فَانْظُرْ |
| حقیقت دهغي | همدارنګي | دروغ ګڼړلي وو | هغه کسانو | چي مخکښي ددوئ نه وو | نو اوګوره |

انجام ورته لا ښکاره شوي نه دي |دغه شان پخوانو خلقو هم (دالله ﷻ کتابونه) دروغ ګڼړلي وو | نو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| كَيْفَ كَانَ | عَاقِبَةُ | الظّٰلِمِينَ ۞ | وَمِنْهُمْ | مَّنْ | يُّؤْمِنُ |
| څرنګي وو | انجام | دظالمانو | اوځیني ددوئ نه | هغه څوك دي | چي ایمان به راوړي |

اوګوره چي د ظالمانو انجام څومره خراب شو ||او څوک په کښي داسي دی |چي په دي کتاب به ایمان

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بِهِ | وَمِنْهُمْ | مَّنْ | لَا يُؤْمِنُ | بِهِ | وَرَبُّكَ | أَعْلَمُ |
| په دي باند | اوځیني ددوئ نه | هغه څوك دي | چي ایمان به رانوړي | په دي باند | اورب ستا | ښه پیژني |

راوړي ||او څوک داسي دي چي ایمان به پري نه راوړي ||او ستا پروردګار فسادیان خلق ډیر ښه پیژني

بِالْمُفْسِدِينَ ۞

فساد کونکي |

قوله تعالیٰ: قُلْ فَأْتُوا بِسُورَةٍ مِّثْلِهِ

**قرآن حکیم یو لاجواب او بې مثال کتاب دې :په دې کښې د قرآن په معجزه باندې رڼرااچولې شوې** ده. چه یوبشر هم ددې صلاحیت نه لري چه ددې په شان قرآن پیش کړې شي. دانه بلکه په دې باندې هم قادرنه دی چه ددې د یوسورة په شان یو سورة جوړکړی او رانې وړی اودا د دې فصاحت او بلاغت د دعوی په بنیاددې. د قرآن پاك اختصار،ددې خوږوالې ددنیا اوآخرت دپاره دنفع ورکونکې، په کثیر معنو باندې مشتمل کیدل،دا څیزونه بل یوکتاب هم نه شی پیش کولې خکه چه داد الله ﷻ د طرف نه

راغلي کتاب دي. هغه الله ﷻ چه په خپل ذات صفات او خپلو افعالو او اقوالوکښې خان له او یو دي.
د مخلوق کلام د هغه کلام سره یوشان والي څنګه پیداکولې شي. الله ﷻ فرمائي چه د دې په شان
لیکل د الله ﷻ نه علاوه بل د هیڅ چا نه شي کیدې. د بشر کلام لږ شان هم دې سره مطابقت نه خوری.
اوبله داچه قرآن پاك هم هغه وائي کوم چه وړاندینوآسماني کتابونو ویلي دی. البته په وړاندینوالهامي
کتابونوکښې چه کوم تحریف او بدلون شوې دې هغه ئې ښکاره کړې دی. او د حلال او حرام احکام ئې
کاني اوشافي توګه باندې بیان کړی دی. د الله ﷻ د طرف نه د دې کیدو کښې یو ذره شك شبه نه شي
کیدې. په دې کښې د تیرې شوې زمانې خبرې هم دی اود راتلونکي وخت پیشن ګوئي هم دی.
**منکرینو د قران کریم ته د قران پاك چیلنج:**په تیرو شوو او راتلونکو خبرو تولوباندې رڼړا اچولې
شوې ده او خلق ئې په داسې لار روان کړی دی چه بالکل صحیح اود الله ﷻ خوښه کیدې شي. اوکه
ستاسو د دې د الله ﷻ دطرفنه په کیدوکښې لږ هم شك وی اودا غلط خیال ستاسو په زړه کښې وی چه
محمدﷺ دا د خپل ځان نه جوړکړې دې نو محمدﷺ خو هم ستاسو په شان بشر دې که هغه داسې قرآن
جوړولې شي نو په تاسو کښې قابل ترین سړې داسې ولې نه شي جوړولې؟ نو تاسو د خپلې دې دعوې
ثابتولود پاره ددې په شان بس یوسورة خو پیش کړئي چه دقرآن پاك په شان بلاغت اختصار او معنویت
لري. محمدﷺ خو یوازې وو اوس تاسود ټولې دنیا انسانان او پیریان راجمع کړئي اوکوشش اوکړئي
اوګورئي. دغه لکه چه الله ﷻ هغوی له چیلنج ورکوی که تاسو په خپله دعوی کښې رښتونی ئې چه دا
د محمدﷺ دخپل لاس لیك دې نوراشئ اودا چیلنج قبول کړئي،یوازې نه بلکه په سوونو زرګونو
یوځای شئي. د دې نه پس یوه بله زبردسته دعوی ده چه دا واورئي تاسویه کله هم په دې قادر کیدې نه
شئي. داخبره مونږ هم داوس نه کوو که ټول پیریان اوانسانان هم راجمع شئي چه داسې یو قرآن
جوړکړئي نو هیڅ کله ئې نه شئي جوړولې اوکه د ځان د پاره هرڅومره امدادیان ولې جوړنه کړئي. بیا
دعوی د لسو سورتونوپورې لنډه کړې شوه دکومې ذکر چه دسورة هودپه اول کښې دې چه آیاهغوی
وائي چه محمد ﷺ دا جوړکړې دې. ښه نو بیا تاسو هم د دې په شان لس سورتونه راوړئي جوړکړئي.
پوره قرآن نه مه جوړوئي اوبغیرد الله ﷻنه دنورو ټولوامدادکونکونه تاسوامداداخستې شئي.که
رښتونی یئ نو مخامخ ولې نه راځئي. بیا د دې نه هم کم ارشاد کیږی که دا محمدﷺ جوړکړې وی نو
که ډیر نه وی نو هم یوسورت پیش کړئي.
سورة بقره (چه په مدینه منوره کښې نازل شوې وو) په دې کښې هم د دغه یو سورة چیلنج دې اودا ئې
خودلې دی چه ستاسو په داسې کولو باندې قدرت نشته نو واورئي! که تاسوداسې آیاتونه پیش نه کړل
اونه ئې چرته پیش کولې شئي نو بیا د دوزخ د عذاب نه بچ شئي. سره د دې چه فصاحت خو د عربو په
ګوټئي کښې پروت وو اود هغوی یوخاص کمال ګڼړلې شو. د هغوی قصیدې او شعرونه کوم چه د
کعبې په دروازه باندې زوړندې کړې شوی وو د هغوی د کمال بلاغت ثبوت دې. خو الله ﷻ چه کوم
قرآن پاك پیش کړوځوك هم د هغې فصاحت او بلاغت ته نه شي رسیدې. نو چه د دې بلاغت، حلاوت،
اختصار،افادیت اوکمال ته په کتو چا ایمان راوړو نورانې وروځکه چه هم پدغه فصحاؤ او بلغاؤ کښې
داسې نکته رس اود پوهې خاوندان هم وو چا چه د قرآن پاك د بلاغت لوئي منلې ده او سرئې ټیټ کړې
دې. اعتراف ئې اوکړو که دا کیدې شي نو هم د الله ﷻ کلام کیدې شي.
**د رسول کریم ﷺ پشان عیسی ﷺ اوموسی ﷺ هم خپلو قومونوته چیلنج ورکړې وو:**څنګه چه د
حضرت موسی ﷺ په زمانه کښې جادوګر چه په خپله جادوګرئي کښې د زمانې مثال وو وینا ئې اوکړه
چه دموسیﷺ همسا مظاهره کول جادو سره هیڅ تعلق نه لری اودا صرف د الله ﷻ په تائید سره
ممکن دی. په دې وجه چه موسی ﷺ د الله ﷻ پیغمبردې ځکه چه یو دفن خاوند دفن په کمال باندې

پوهیدلې شي. او هم دغه شان چه عیسی ﷺ په کومه زمانه کښې پیدا شوې وو په هغه زمانه کښې طب د کمال درجه حاصله کړې وه. اود بیمارانو په علاج کښې د طب ماهرانو خپل کمال خودلو. په داسې وخت کښې د مور نه پیدا شوی ړانده او شل به د حضرت عیسی ﷺ په ذریعه صحیح کیدل بلکه د الله ﷻ نوم به ئې اخستلو او مړه ژوندی کول داسې څیزونه دی د کوم په وراندې چه د هیڅ یو دارو اوعلاج څه کمال نه شو چلیدې. نو پوهان پوهه شو چه محمد ﷺ د الله ﷻ بنده او رسول دې. حضور ﷺ فرمائیل چه هریونبي ته داسې معجزې ورکړې شوې دی کوم ته په کتو چه بشر ایمان راوړې شي. اومانه هم چه دا کوم قرآن راکړې شوې دې د دې متعلق زه هم امید کوم چه اکثراو ډیر خلق به د دې صداقت اومني(۱) البته په دوی کښې بعضې کوم چه په قرآن پاك نه شو پوهیدلې تکذیب کول ئې شروع کړو. خود دې څه دلیل ئې رانوړې شواوداداهغوی دجهالت اوکم عقل توب په وجه وو. دغه شان تکذیب وړاندینو قومونو هم د خپلو پیغمبرانو کړې وو.

**قریشو ته تنبیه::** نو ته اوس لږ نظر واچوه چه د دغه دروغژنو څنګه خراب حشر شو کوم چه صرف د دښمننې او ضد په وجه تکذیب کولو. نو اوس اې د قریشوانکار کونکوا د هغوی حشر کتوسره عبرت واخلئ. په هغه زمانه کښې خو هم بعضو کسان ایمان راوړې وو اود قرآن پاك نه فائده مند شو او بعضو چه ایمان رانوړو هغوی د کفر په مرګ مړه شو. هغه خلق الله ﷻ بنه پیژني او څوك چه د هدایت مستحق دی هغوی ته هدایت هم کوی او چه څوك د ضلالت مستحق دی هغوی تکراووی. په دې عمل کښې هغه عدل کونکې دې ظالم نه دې.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَإِن كَذَّبُوكَ | فَقُل | لِّي | عَمَلِي | وَلَكُمْ |
| او که دروغ اوګنړي دوئ تا | نو اووایه | زما دپاره | عمل زما دې | اوستاسو دپاره |
| او که دوئ (اوس هم) تا دروغژن ګنړي اِنو ورته اووایه چې ماله څما عمل بس دې او ستاسو دپاره ستاسو | | | | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عَمَلُكُمْ | أَنتُم | بَرِيئُونَ | مِمَّا | أَعْمَلُ | وَأَنَا | بَرِيءٌ | مِّمَّا |
| عمل ستاسو دې | تاسو | ذمه وار نه يئ | دهغه عمل | چې زه ئې کوم | اوزه | ذمه وارنه یم | دهغه عمل |
| عملونه بس دی تاسو څما دعمل ذمه وارئې نه بري يئ او زه ستاسو دعملونو د ذمه وارئي نه بري یم او څوك | | | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| تَعْمَلُونَ ﴿٤١﴾ | وَمِنْهُم | مَّن | يَسْتَمِعُونَ | إِلَيْكَ ط | أَفَأَنتَ تُسْمِعُ |
| چې تاسوئې کوئ | اوځینې ددوئ نه | هغه خلق دی | چې غوږ ږدي | تاته | ایا نوته به اخبره واوروې |
| په کښې داسې دی اچې تاته غوږ نیسي ایا ته به کنړو خلقو ته خبره واورولې شې اکرکه هغوئ | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الصُّمَّ | وَلَوْ كَانُوا | لَا يَعْقِلُونَ ﴿٤٢﴾ | وَمِنْهُم | مَّن | يَنظُرُ إِلَيْكَ ط |
| کنړوته | اګر که وي هغوئ | چې په هیڅ نه پوهیږي | اوځینې ددوئ نه | هغه خلق دی | اچې ګوري تاته |
| دعقل نه کار نه اخلي | اوڅوک په کښې داسې دی چې تاته ګوري | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَفَأَنتَ | تَهْدِي الْعُمْيَ | وَلَوْ كَانُوا | لَا يُبْصِرُونَ ﴿٤٣﴾ | إِنَّ اللَّهَ | لَا يَظْلِمُ |
| ایانو ته به | لار اوښائي | ړندوته | اګر که وي هغوئ | چې هیڅ نه ویني | بیشکه الله | نه کوي ظلم |
| نوایا ته ړندو ته لارخودلې شي اګرکه هغوئ نه ویني بیشکه الله ﷻ په خلقو باندې معمولي ظلم هم نه کوي | | | | | |

---

(۱) صحیح بخاری کتاب فضائل القرآن باب کیف نزل الوحی واول ما نزل: ۴۹۸۱، صحیح مسلم: ۱۵۲.

| اَلنَّاسَ | شَيْئًا | وَّلٰكِنَّ | النَّاسَ | اَنْفُسَهُمْ | يَظْلِمُوْنَ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| په خلقو باندې | هيڅ قدرله | وليکن | خلق | په خانونو خپلو باند | ظلم کوی |
| خودا خلق پخپله په خپلو ځانونو ظلم کوی او هغه ورځ ورته وریاده کړه | | | | | |

قوله تعالى: فَقُلْ لِّيْ عَمَلِيْ وَلَكُمْ عَمَلُكُمْ

**د قيامت په ورځ به څوك هم د چاذمه وار نه وی صرف د خپلوګړو بدله به ورته ملاويږي:-** نبى اكرم ﷺ ته خطاب كيږي كه چرې دامشركان ستاتكذيب كوى نوته هم د دوى نه اود دوى داعمالونه ويزارى ښكاره كړه اوصفا ورته اووايه چه زماعمل زما د پاره او ستاسو عمل ستاسو دپاره. زه خو به ستاسو معبودان اونه منم. ابراهيم خليل الله ﷺ هم خپل قوم ته داسې ونيلي وو چه زه ستاسو نه لرې او ستاسود دروغو معبودانونه خلاص يم. هم په قريشوكښې بعضې خلق داسې دى چه ستاښكلې كلام او قرآن مجيد اورى او چه څوك متاثر كيدې شو نو هم دا كافى وو خوبيا هم هغوى په نيغه لار رانغله. په دې كښې ستا هيڅ قصور نشته ځكه چه ته كنړو ته په اورولو قادر نه نې. او نه تاته پخپله دا قدرت حاصل دې چه ته هغوى ته هدايت اوكړې تركومې چه د الله ﷻ رضا شامله نه وى.او په دوى كښې داسې هم شته چه ستاطرف ته په ژورنظرسره ګورى. ستا صفاسهتره اخلاق او ښكلې صورت مبارك اوستا د نبوت دلائل (كوم نه چه د پوهې خاوندان فائده اوچتولې شى) په خپلو كولاؤ سترګوسره ګورى خو بيا هم د قرآن پاك د هدايت نه څه فيضياب كيږى نه. لكه څنګه چه اهل علم او اهل بصيرت فائده مند كيږى. اوچه داسې مؤمن خلق تاته ګورى نوديږيه غوراووقارسره ګورى اوچه كافران نظر اچوى نو به سپكوالى سره ګورى. هغوى تاته ګورى نو خنداګانې كوى. الله ﷻ په چاباندې يو ذره هم ظلم نه كوى. يو اورى او هدايت بياموميى بل هم اورى او ګورى خو روند اوكوڼ جوړشوې وى سترګې كولاؤ دى بيا هم راندە دى. غوږونه لرى خو بيا هم كاڼه دى. زړه ئى شته خو مړ. يوفائده اوچته كړه اوبل نقصان. د الله ﷻ ذات پاك مختار اومتصرف دې هغه دټولونه پوښتنه كولې شى خودهغه نه څوك تپوس پوښتنه كولې نه شى. هغه خوظلم نه كوى ولې خلق پخپله په خان ظلم كوى. په حديث قدسى كښې دى چه اې زما بندې ګانو! ما په خپل خان باندې ظلم ګول حرام ګرځولې دى تاسو ئى هم حرام كړنى. او په يو بل باندې ظلم مه كوئى ستاسو اعمال زما په نظر كښې دى. زه د هرقسم عمل پوره پوره بدله وركوم. چاته چه ښه بدله ملاؤشوه هغه دې د الله ﷻ شكر كوى او چا ته چه سزاملاؤشوه هغه له پكاردى چه هم خپل ذات ملامت كړى.(١)

| وَيَوْمَ | يَحْشُرُهُمْ | كَاَنْ | لَّمْ يَلْبَثُوْٓا | اِلَّا | سَاعَةً | مِّنَ النَّهَارِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوپه كومه ورځ اچې راجمع كړې الله دوئ لره | لكه چې اوخت تير نه كړو دوئ | | | مګر | ايو ساعت | د ورځ نه |
| اوهغه ورځ ورته وریاده كړه اچې الله ﷻ به ئې راجمع كړى نوددنيا ژوند به ورته دومره لږ ښكارى لكه چې دوئ | | | | | | |

| يَتَعَارَفُوْنَ | بَيْنَهُمْ | قَدْ خَسِرَ | الَّذِيْنَ |
|---|---|---|---|
| چې پيژنى به يو بل | په خپل منځ كښې | يقينا په نقصان كښې پاتې شو | هغه كسان |
| په دنيا كښې هيله يو ګړئى پاتې شوى وو په خپل مينځ كښې به يوبل پيژنى هغه كسانو غټ تاوان اوكړو | | | |

(١) صحيح مسلم كتاب البر باب تحريم الظلم:٢٥٧٧، ترمذى:٢٤٩٥، ابن ماجه:٤٢٥٧، احمد:١٦٠/٥، ابن حبان: ٦١٩.

| كَذَّبُوْا | بِلِقَآءِ اللّٰهِ | وَمَا كَانُوْا | مُهْتَدِيْنَ۝ |
|---|---|---|---|
| چي دروغ ئې اوګڼړو | ملاقات دالله | اونه وو هغوئ | نيغه لار مونده ونكي |
| چي دالله ﷻ ملاقات ئې دروغ اوګڼړلو هغوئ هسې هم دلارې خلق نه وو | | | |

**قوله تعالیٰ: وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ كَاَنْ لَّمْ يَلْبَثُوْآ**

**د قيامت په ورځ دنفسا نفسئى عالم:-** ياداشت وركولي شي چه قيامت به قائميږي او خلق به د خپلو قبرونونه راوچتيږي اود حشر ميدان كښې به راجمع كولې شي اوچه كله هغه ورځ راورسي نو هغوی به پوهه شي چه په دنياكښې مود ورځې يوه حصه تيره كړې راغلي يو. يعني ماښام نه نو سحر ووا و سحر نه ماښام تيرشوي وو.په كومه ورځ چه شپيلئ پوك وهلې شي نومجرمان به ډلي ډلي پريشان حال راوځي،پټې پټې خبرې به كوي چه صرف لس ورځې به مونږ پاتې شوې يو.په دوی كښې به د ممتاز او تيزې حافظې والا خلق وائى واه د څه لس ورځې صرف يوه ورځ خو مو په دنياكښې تيره كړه. ګناه ګاران خلق خو به قسمونه خوري.او وائى به د يوې ګهنټې نه زيات چرته پاتې شوې يو. دا ټول دليل دې د دې خبرې چه د آخرت په كوركښې د دنيا ژوند څومره سپك او كم دې. تپوس به كولې شي چه اوښانې په دنياكښې څومره كاله پاتې وئې؟نو وائى به چه يوه ورځ يادد دې نه هم كم.نود ياداشت لرونكو نه تپوس اوكړئ شي وئيلي به شي چه افسوس تاسو ته علم وې چه د دنيا ژوند څومره لږ دې هغوی به په خپل مينځ كښې يو بل اوپيژنى. مور پلار به خپل بچي اوبچي به مور پلار خپل خپلوان به هم خو هريو به خپل مصيبت كښې يا په خپل راحت كښې مصروف او مشغول وي. كله چه شپيلئ پوك وهلې شي نو بيا به حسب او نسب هيڅ نه وي يو خپلوان به د بل خپلوان تپوس نه كوي. كومو خلقو چه د الله ﷻ سره د ملاقات تكذيب كړې وو هغوی به په ډير لوئ نقصان كښې وي. افسوس دې په هغه دروغ ګڼړونكو باندې چه د قيامت په ورځ هغوی خپل ذات او خپل متعلقين په هلاكت كښې واچول، نودې نه لوئى نقصان بل څه كيدې شي چه د خپلو ملګرو په وړاندې به ارمان او پښيمانتيا اوچتول وي او جدا اوسيدل به وي.

| | وَاِمَّا | نُرِيَنَّكَ |
|---|---|---|
| | اوكه | اوښايو مونږ تاته |
| اوكه مونږ تاته دهغه عذاب څه قدرې اوښايو | | |

| بَعْضَ | الَّذِيْ | نَعِدُهُمْ | اَوْنَتَوَفَّيَنَّكَ | فَاِلَيْنَا | مَرْجِعُهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| بعضې انجام | هغه | چي مونږ دوئ سره وعده كړې ده | ياوفات كړومونږتا | نوخاص مونږته | دې راتلل د دوئ |
| چي دكومې هغوئ سره وعده كوؤ | ايا مونږ تالره دهغې نه رومبې وفات كړو | د دوئ به (په هر حال) كښې | | | |

| ثُمَّ اللّٰهُ | شَهِيْدٌ | عَلٰى مَا | يَفْعَلُوْنَ۝ | وَلِكُلِّ اُمَّةٍ | رَّسُوْلٌ | فَاِذَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بيا الله | ګواه دي | په هغه څه باند | چي دوئ ئې كوي | اودپاره دهرامت | يو رسول دي | نوكله چي |
| مونږ ته واپس كيږي او الله ﷻ د دوئ په كارونو ښه پوهيږي | اوهرامت ته يو استاذې راغلي دي | | | | | |

| جَآءَ | رَسُوْلُهُمْ | قُضِيَ | بَيْنَهُمْ | بِالْقِسْطِ | وَهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| راشي | رسول دهغوئ | نوفيصله به كيږي | په منځ دهغوئ كښې | پوره په انصاف سره | اوپه هغوئ باندې |
| نو هركله چي استاذې ورته راشي | نو د دوئ ترمينځ به په انصاف فيصله اوكړې شي | | | | |

| لَا يُظْلَمُونَ |
| --- |
| به هیڅ ظلم نه کیږی \| |
| او لږ زیاتي به پرې هم نه کیږی |

قوله تعالى:: قُضِيَ بَيْنَهُمْ بِالْقِسْطِ

**د قیامت ورځ د انصاف د فیصلې ورځ ده:-** خپل نبي ﷺ ته خطاب کولې شی که چرې مونږ ستا په ژوند کښې دهغوی نه بدله واخلودې د پاره چه ستا زړه ته تسلی اوشی اویاهم ستا ژوند ختم شی دهغوی واپس کیدل هم زمونږ طرف ته دی. که چرې ته هم نه ئې نو ستانه پس به الله ﷻ د هغوی د افعالو ګواه جوړ شی.

حضور ﷺ اوفرمائیل چه وړاندې شپه زما مخکښې او روستونې ټول امت زما مخې ته پیش کړې شو نو یوسړی اووئیل یا رسول الله ﷺ! وړاندینې امت خو خیر ولې روستونې کوم چه راتلونکې دې او لاتراوسه پیدا شوې هم نه دې. هغه څنګه پیش کړې شو؟ نو وئې فرمائیل چه د هغوی یو خاکې شکل وړاندې راوړلې شو. ما په هغوی کښې هریو د هغې نه زیات پیژندلو لکه څنګه چه ته خپل یو ملګرې پیژنې([1])

د هریو امت د پاره یو یو رسول وی نود هغوی په مینځ کښې په انصاف سره فیصله کیږی کله چه الله ﷻ فرمائیلی چه زمکه د الله ﷻ د نور نه ړڼ قیږی. دغه شان هریو امت به د خپل پیغمبر په موجودګئ کښې الله ﷻ ته مخامخ کولې شی. د هغوی د خو او بدو اعمالو عمل نامه به ورسره وی چه په حیثیت د هغوی ګواه به وی اوملائکه به هم ګواه وی کومې چه په هغوی باندې نګرانانې مقرر شوې وې.

**قیامت کښې به دا امت اولنې امت وی په حساب کښې ::** یوبل پسې به هریو امت پیش کیږی اودا امت سره د دې نه چه آخری امت دې خود قیامت په ورځ به دا اولین امت جوړشی. د کوم فیصله چه به الله ﷻ د ټولونه وړاندې فرمائی. په بخاری او مسلم کښې دی چه حضور ﷺ فرمائیلی دی چه مونږ خود ټولونه پس یو خوپه قیامت کښې به د ټولونه وړاندې یو، د ټول مخلوق به اول زمونږ حساب کتاب کولې شی([2]) دې امت د رسول الله ﷺ داشرف دخپل رسول ﷺ په برکت سره حاصل کړې دې.په حضور ﷺ باندې دې درود اوسلام وی. آمین.

| وَيَقُولُونَ | مَتَىٰ | هَٰذَا الْوَعْدُ | إِن كُنتُمْ | صَادِقِينَ |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| اووائی دوئ | چې کله به وی \| دا | وعده | که یئ تاسو | صادقان |

او دوئ وائی چې دا (عذاب) وعده بهٔ آخر کله پوره کیږی که تاسو رینښتونی یئ

| قُل | لَّا أَمْلِكُ | لِنَفْسِي | ضَرًّا | وَلَا نَفْعًا | إِلَّا | مَا | شَاءَ اللَّهُ |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| ورته اووایه | چې زهٔ اختیارنه لرم | دپاره دخان خپل | دضرر | اودنفعې | مګر کیږی | هغه څه | چې اوغواړی الله |

ورته اووایه زهٔ خو د خپل خان د ګټې او د تاوان هم هیڅ اختیار نه لرم مګرخه چې الله ﷻ غواړی هر یو امت

| لِكُلِّ أُمَّةٍ | أَجَلٌ | إِذَا | جَاءَ | أَجَلُهُمْ | فَلَا يَسْتَأْخِرُونَ | سَاعَةً |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| دپاره دهرامت | یوه نیټه ده | کله چې | راشی | نیټه دهغوئ | نونهٔ به روستو کیږی | یوساعت |

دپاره یوه نیټه مقرر ده هرکله چې دهغوئ وخت پوره شی انو بیا نه یو ګړئ روستو پاتې کیدې شی

---

[1] طبران: ۳۰۵۴ وسنده موضوع زیاد بن المنر کذاب.

[2] صحیح بخاری کتاب الاذان باب فرض الجمعة: ۸۷۶، صحیح مسلم: ۸۵۵-۸۵۶.

وَّلَا يَسْتَقْدِمُوْنَ۝ قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ اَتٰىكُمْ عَذَابُهٗ بَيَاتًا

اونه به مخکښې کیږي| اووایه دوئ ته| آیا وینئ تاسو| که چرې راشي تاسو ته | عذاب دهغه | دشپې

اونه مخکښې تللې شي| ورته اووایه چې دا خو اووائې که دالله ﷻ عذاب دربانديې د شپې

اَوْ نَهَارًا مَّاذَا يَسْتَعْجِلُ مِنْهُ الْمُجْرِمُوْنَ۝

یا دورځې | نو اخر دا کوم داسې څیز دې | چې تلوار کوي | دپاره دهغې | مجرمان خلق

یا د ورځې ناګهانه راشي | نو په هغې کښې داسې کوم څیز دې چې د مجرمانو ورته تلوسه ده

اَثُمَّ اِذَا مَا وَقَعَ اٰمَنْتُمْ بِهٖ ؕ آٰلْئٰنَ

آیا بیا په هغه وخت کښې | کله چې | واقع شي | نو ایمان به راوړئ تاسو | په هغې | آیا اوس

آیا چې عذاب راشي نو هله به تاسو ایمان راوړئ | (داولې) اوس (ترینه ځان بچ کوئې) | حال دا

وَقَدْ كُنْتُمْ بِهٖ تَسْتَعْجِلُوْنَ۝ ثُمَّ قِيْلَ لِلَّذِيْنَ

حال داچې وئ تاسو| چې په راتللو ددې سره| تاسوتلوارجوړه کړې وه| بیابه | اوونیلې شي| هغه کسانو ته

چې تاسو خو به ددې (عذاب) په حقله تلوار جوړ کړې وه | بیابه ظالمانو ته اوونیلې شي | چې د تل

ظَلَمُوْا ذُوْقُوْا عَذَابَ الْخُلْدِ ۚ هَلْ تُجْزَوْنَ اِلَّا

چې ظلم ئې کړې وي | اوڅکئ | عذاب دهمیشوالي | آیا بله څه بدله به درکړې کیږي تاسو له | مګر

عمر عذاب خوند اوڅکئ | تاسو ته به دخپل عمل نه سوا نوره څه بدله درکیدیشی |

بِمَا كُنْتُمْ تَكْسِبُوْنَ۝

بدله دهغه عمل| چې وئ تاسو| چې ګټلو به تاسو|

قوله تعالى:: قُلْ لَّاۤ اَمْلِكُ لِنَفْسِيْ

**د قیامت عذاب د الله ﷻ په قبضه قدرت کښې دې**: ارشاد کیږي چه دا مشرکان په عذاب کښې تندي کوي اودعذاب دوخت راتلونه وړاندې عذاب غواړي. په دې کښیې د دوی هیڅ ښیګړه نشته.کافران خو تندي کوي او مؤمنان د دې نه ویریږي او یقین ساتي چه عذاب به خامخا راځي سره د دې که د دې مقررشوې وخت معلوم نه وي. د دې دپاره الله ﷻ خپل نبي ﷺ ته جواب ښائي چه اووایه ورته چه زه د خپل ځان د پاره نه دنقصان مالك یم اونه د فائدې مالك یم،زه صرف دومره وایم چه څومره ماته خودلې شوي وي اوکه چرته زه څه حاصلول غواړم نو په هغې باندې پخپله قادر نه یم ترڅوچه الله ﷻ ما خبرنه کړي.زه خود هغه بنده اوستاسو دپاره د هغه قاصد یم. ماتاسوته خبر درکړو چه قیامت به خامخا راځي خود هغه وخت ماته نه دې خودلې شوې. د هریوقوم دپاره یوه مقرره موده وي اوچه کله هغه موده ختمه شي نو په هغې کښې به نه دیوساعت وړاندیوالې وي او نه روستوالې. لکه چه فرمائي ﴿وَلَنْ يُّؤَخِّرَ اللّٰهُ نَفْسًا اِذَا جَآءَ اَجَلُهَا﴾ کله چه دچا وخت راشي نو یوه ذره په هغې کښې روستوالې نه شي کولې.په کافرانوباندې به د الله ﷻ عذاب ناګهانه راشي.که په شپه او ورځ کښې یووخت هم راشي نو اوښائې څه به کوئې؟ په دې وجه تندي ولې کوئې؟ چه کله راشي نو هغه وخت به ایمان راوړئې؟هغه به کله د ایمان راوړو وخت پاتې شي. هغه وخت به ونیلې شي چه واخلئ د کوم عذاب تندي چه مو کوله. هغوی به وائي یاالله مونږ اولیدلواومونږ واوریدلو.عذاب سره په مخامخ کیدلو به وائي چه اوس مونږ یو الله ﷻ منواود

نورو تولومعبودانونه اعراض کوو.خودهغه وخت ایمان هیڅ ایمان نه دی.دالله ﷻعادت خو په بندیګانوکښې داسې راروان وی. دې ظالمانو ته به ونیلی شی چه اوس د همیشه عذاب اوڅکئی. دغه شان به هغوی ښه رټلې کیږی اود کوم عذاب نه چه هغوی انکارکولوهم په هغه عذاب کښې به په دیکودیکوورتونبلې شی. تاسو به ورته جادو ونیلو نو دا اوس جادو دې، نه بلکه تاسو پخپله رانده ئې. اوس که صبر کوئې اوکه نه کوئې د خپل بد عمل بدله به خامخا مومئې.

| | | |
|---|---|---|
| وَيَسْتَنْۢبِـُٔوْنَكَ | اَحَقٌّ | هُوَ ؕ |
| اوتپوس کوی دوئ ستا نه | چې آیا حق دی | هغه |

او دوئ ستاسونه تپوس کوی | چې آیا دا عذب ( په رښتیانه) برحق دې | ورته اووایه چې آو |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قُلْ | اِیْ | وَرَبِّیْٓ | اِنَّهٗ | لَحَقٌّ ؔ | وَمَآ اَنْتُمْ | بِمُعْجِزِیْنَ ۝ |
| ورته اووایه | هو | اوپه رب م دقسم وی | چې بیشکه دا | بلکل حق دی | اونه یئ تاسو | عاجزه کونکی |

پخپل رب مې دې قسم وی اچې دا بالکل حق دې |او تاسو( الله ﷻ)د هغې د راوستو نه عاجزه کولې نشئ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَوْ اَنَّ | لِكُلِّ نَفْسٍ | ظَلَمَتْ | مَا | فِی الْاَرْضِ | |
| اوکه چری شی | دپاره دهر نفس | چې ظلم ئې کړې وی | هغه ټول دولت | چې په زمکه کښې دې | |

اوکه (دقیامت په ورځ) یو ظالم سره د ټولې دنیا ټول مال موجود شی | نو هم به ئې دخان

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَافْتَدَتْ | بِهٖ ؕ | وَاَسَرُّوا | النَّدَامَةَ | لَمَّا | رَاَوُا |
| خامخابه په فدیه کښې ورکړی | دغه مال لره | اوپټه به کړی | پښیمانتیا | هر کله چې | اووینی دوئ |

په فدیه کښې ورکړی | او (اول اول) عذاب اووینی نو پټ په زړه کښې به پښیمانه شی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الْعَذَابَ ۚ | وَقُضِیَ | بَیْنَهُمْ | بِالْقِسْطِ | وَهُمْ | لَا یُظْلَمُوْنَ ۝ |
| عذاب | اوفیصله به اوکړی شی | په منځ ددوئ کښې | په انصاف سره | اوپه دوئ به | هیڅ ظلم نه کیږی |

اودهغوئ ترمینځه به په انصاف فیصله اوکړی شی | اوهیڅ زیاتې به پرې نه شی کولې

قوله تعالیٰ: وَيَسْتَنْۢبِـُٔوْنَكَ اَحَقٌّ هُوَ ؕ

د مرګ نه پس به څه کیږی:- تانه داخلق تپوس کوی چه دخاورې کیدونه پس دادقبرونونه پاسیدل رښتیادی. نو اووایه چه او د الله ﷻ قسم دې چه رښتیادی. ستاسو خاورې کیدل او بیا ستاسود اول حالت په شان راوستل زمونږ دپاره آسان دی په دې کښې مونږ عاجز نه یو. الله ﷻ خو چه کله څه څیز په وجود کښې راوستل غواړی نو صرف دا وائی چه "اوشه" نو هغه څیز راپیدا شی. د دې قسم بیان په قرآن مجید کښې په دوو نورو ځایونوکښې شوی دې. په کوم کښې چه الله ﷻ خپل رسول الله ﷺ ته حکم ورکړې دې چه څوك د واپس کیدو د ځائ نه انکار کوی هغوی ته په قسم خوړلوسره بیان اوکړه. په سورة سباکښې دی چه کافروانی چه قیامت به نه راځی نو دوی ته اووایه چه د الله ﷻ قسم راځی به او په سورة تغابن کښې دی چه کافر ګڼړی چه بیا به نه ژوندی کیږو ورته اووایه چه د الله ﷻ قسم ژوندی کیږئی به او ستاسو عملونه به تاسو ته خودلې شی. اودا خبره الله ﷻ ته څه ګرانه ده. کله چه قیامت قایم شی نودا کافران به وائی چه د ډکې زمکې په شان سره زر ورکړو اود عذاب نه ځان خلاص کړو خو داسې به نه کیږی. اوچه کله عذاب اووینی نو یو خاموشه پښیمانتیا سره به مخ شی. خو هغوی سره چه کوم سلوك هم کیږی په انصاف سره به وی. یوه ذره به ؕ هم زیاتې نه کیږی.

اَلَآ اِنَّ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ اَلَآ

واورئ | بيشکه | الله لره دی | هغه څه | چي په آسمانونو کښي دی | اوپه زمکه کښي دی | ياد لرئ

ياد لرئ چې هر څه چې په اسمانونو او په زمکه کښې دی اهغه ټول دالله ﷻ دی اياد ساتئ چې دالله ﷻ

اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَّلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝ هُوَ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ

چي وعده دالله | حقه ده | وليکن | زيات ددوئ | نه پوهيږي | هغه ژوندی کول کوی | اومړه کول کوي

وعده رښتوني ده | خوزيات خلق نه پوهيږي | هم هغه ژوندی کول کوی | او هم هغه مړه کول کوي

وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ۝

اوخالص هغه ته | به واپس بوتللي کيږئ تاسو |

هم هغه ته به تاسو ټول واپس کيږئی |

قوله تعالى:: اَلَآ اِنَّ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ

**د کائنات مالک الله ﷻ دي :-** الله ﷻ د آسمانونو او زمکو مالك دي، دهغه وعده به پوره کيږي. هغه ژوندی کول کوی هغه مړه کول کوی، واپس کيدل هم دهغه طرف ته دی. هغه په دې خبره قادر دی چه د سمندرونونه د عالم د اطرافونه د هغوی د خاورو ذرې بيا راجمع کړی او بيا ترې ژوندې بدن جوړ کړی.

يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَآءَتْكُمْ مَّوْعِظَةٌ

| اے خلقو | په تحقيق سره راغلي دې تاسو ته | نصيحت

| ائې خلقو تاسو ته دخپل پروردګار د طرفنه نصيحت راغلي دې

مِّنْ رَّبِّكُمْ وَشِفَآءٌ لِّمَا فِي الصُّدُوْرِ ۙ وَهُدًى وَّرَحْمَةٌ

دطرفه درب ستاسونه | اوشفاء ده | دپاره دهغه | چې په سينو کښي دی | اولارښودونکي دې | اورحمت دې

او د زړونو دمرضونو علاج دې | او چې څوک ئې اومنی دهغوئ دپاره هدايت او رحمت دې

لِّلْمُؤْمِنِيْنَ ۝ قُلْ بِفَضْلِ اللّٰهِ وَبِرَحْمَتِهٖ فَبِذٰلِكَ

دپاره دمومنانو | ورته اووايه | چې په فضل دالله سره | اوپه رحمت دهغه سره | نو هم په دې باندې |

اووايه چې دالله ﷻ په فضل اودهغه په رحمت سره هم دغه خلقو ته خوشحالي پکار ده | دغه

فَلْيَفْرَحُوْا ۭ هُوَ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُوْنَ ۝

پکار دی چې خوشحاله شی دوئ | دا | بهتر دې | دهغه ټولو خيزونو نه | چې دوئ ئې جمع کوی |

(فضل او رحمت) بهتر دې | د هغې (مالونو) نه چې دوئ ئې راجمع کوی اورته اووايه چې

قوله تعالى:: وَشِفَآءٌ لِّمَا فِي الصُّدُوْرِ ۙ

**د روحانی بيمارود پاره قرآن پاک کتاب شفاء ده.-** قرآن عظيم کوم چه ورکړې شوې دې دهغې احسان يادولې شی. اې خلقوادا پند اونصيحت يو دفتر دې کوم چه ستاسو د الله ﷻ دطرف نه دې. او ستاسو د زړونود پاره شفا ده. يعنی شك شبه اود زړونوناپاکی او ګندګی لرې کونکې دې، دې سره به د الله ﷻ هدايت او رحمت حاصليږی خو صرف هغوی ته چه په الله ﷻ باندې يقين او ايمان لری. قرآن کريم

مونږ د مؤمنانود پاره شفا اورحمت جوړکړې راليګلې څود ګناهګارانود پاره د نقصان او خسارې نه سوا بل هيڅ نه دی. اووايه چه دا قرآن پاک د الله ﷻ فضل او رحمت دې،دا واخلئ او خوشحاله شئ. اود فاني دنيا کومې فائدې چه تاسو حاصلونې په هغه ټولو کښې بهترين څيز دا قرآن پاک دې.

**د عمر فاروق ؓ قرآن فهمي::** کله چه عمر ؓ له د عراق خراج راغلو نو حضرت عمر ؓ د هغې د کتلو دپاره راغلو اود هغه خادم هم هغه سره وو.عمر ؓ په خراج کښې راغلی اوښان اوشميرل خو ترکوم خاې پورې چه په شميرستړې شو نوونې ونيل د الله ﷻ شکر دې.دهغه خادم اوونيل د الله ﷻ قسم دې چه داهم دهغه فضل اورحمت دې.نوعمر ؓ اوفرمائيل چه داسې نه، الله ﷻ ﴿قُلْ بِفَضْلِ اللّٰهِ وَبِرَحْمَتِهٖ﴾ ونيلو سره قرآن اواستفاده مراد اخستې ده.پدې وجه دې ته فضل او رحمت مه وايه بلکه ﴿مِّمَّا يَجْمَعُوْنَ﴾ کنړل پکار دی. خکه چه دا زمونږ راجمع کړې شوې دې. د فضل اورحمت خو ډير لوئ شان دې.

قُلْ اَرَءَيْتُمْ مَّآ اَنْزَلَ اللّٰهُ لَكُمْ مِّنْ رِّزْقٍ فَجَعَلْتُمْ

اووايه | ايا وينئ تاسو | هغه څه | چې نازل کړې دې الله | ستاسو دپاره | درزق نه | نو جوړکړل تاسو

دا اووائې چې الله ﷻ تاسو ته کوم رزق راليږلې وو | نوتاسو (دخان نه) په هغې کښې څه

مِّنْهُ حَرَامًا وَّحَلٰلًا ؕ قُلْ آٰللّٰهُ اَذِنَ لَكُمْ اَمْ عَلَى اللّٰهِ

دهغې نه | څه حرام | اوڅه حلال | ورته اووايه | اايا الله | اجازت درکړې دې | تاسو ته | يا په الله باندې

حرام او څه حلال کړل | ددوئ نه تپوس اوکړه ايا الله ﷻ تاسو ته ددې اجازت درکړې دې | که نه تاسو

تَفْتَرُوْنَ ۝ وَمَا ظَنُّ الَّذِيْنَ يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ

دروغ تړئ تاسو | اوڅه دې | ګمان | دهغه کسانو | چې تړی هغوئ | په الله باندې | دروغ |

د(خان نه) په الله ﷻ باندې دروغ وائې | ايا د قيامت د ورځې په باره کښې دهغې خلقو څه

يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ

په ورځ دقيامت | بيشکه | الله | خامخا خاوند دفضل دې | په خلقو باندې | وليکن | زيات ددوئ

ګمان دې ، | څوک چې په الله ﷻ باندې دروغ تړی | بيشکه الله ﷻ په خلقو ډير مهربان دې | خو زيات

لَا يَشْكُرُوْنَ ۝

نه اوباسی شکر

خلق ناشکره دی

**قوله تعالى:: فَجَعَلْتُمْ مِّنْهُ حَرَامًا وَّحَلٰلًا ؕ**

**پخپله دخپل ځان نه دحلال اوحرام مذمت.-** مشرکانوبعضې څناورو ته د "بحائر"، "سوائب" او "وصائل" نومونه ورکولوسره څه په ځان حرام او څه په ځان حلال ګرځولې وو. د هغې ترديد فرمائيلې کيږی. لکه څنګه چه دالله ﷻ ارشادمبارك دې د پټونه چه څه راوځی اوکوم څاروی چه پيدا کيږی هغه په دې کښې د الله ﷻ د پاره يوه خاص حصه ګرځولې ده[1] ابوالاحوص ؓ روايت کوی چه زه حضور ﷺ ته حاضر شوم اود شکل او جامو په لحاظ زه بدحال ښکاريدم. حضور ﷺ اوفرمائيل چه تاسره څه مال اودولت شته که نه؟ ماونيل چه د الله ﷻ راکړې شوې هرڅه موجود دی. د اوښانو اسونو اوچيلو رمې دی وينځې او

[1] الطبری:۱۱۲/۵.

غلامان دي نوحضور ﷺ اوفرمائيل بيا په تاباندې دالله ﷻ دنعمت اثاروليې ښكاره نه دي. بيائي اوفرمائيل چه ستاد اوښانو بچې كيږي اوهغه په هراندام باندې برابر وى خوتاسو په چاړه باندې د هغوى غوږونه پرې كوئي. وائې چه دا 'بحائر' دي، د هغوى څرمن څيرئي او وائې چه 'صرم' دي. په خپل خان باندې هم حرام كوئې او په خپل اولاد باندې هم حرام كوئې. ولې داسې نه ده؟ ماوئيل چه او. بيا حضور ﷺ اوفرمائيل چه واوره كوم څه چه الله ﷻ تاله دركړى دى هغه د هميشه د پاره حلال دى او حرام كيدې نه شي. د الله ﷻ د قدرت لاس ستا د لاس نه مضبوط دې. اود الله ﷻ چاړه ستا د چاړې نه ډيره تيره ده[1] الله ﷻ د داسې خلقو نه سخت د ناراضگئ اظهار فرمائي چه د هغه حلال په خان باندې حرام كوى او حرام دخپل خان د پاره حلال جوړوى. اودا هرڅه د خپل ذاتي رائې او خواهش په بنياد چه د دې هيڅ دليل نشته. بيا هغه د ورځې د قيامت د عذاب نه ويرولې شي. فرمائي چه كوم خلق په الله ﷻ باندې د خان نه خبرې كوى آخر هغوى څه گڼړى چه د قيامت په ورځ به مونږ د هغوى سره څه سلوك كوو.

**په ايت كښې د فضل نه مراد څه دې؟:** د الله ﷻ ارشاد دې ﴿ إِنَّ اللَّهَ لَذُو فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ ﴾ په خلقو باندې د الله ﷻ ډيرلوئ فضل دې. ابن جرير رحمه الله وائي چه د دې نه كافرانوته په دنياكښې زر سزا ورنكول مراد دى. زه وايم چه د دې خبرې هم احتمال دې چه د دې نه دامراد وى چه الله ﷻ ډير لوئ دفضل خاوند دې په خلقو باندې. په دنياكښې ډير داسې څيزونه دانسانانو دپاره پيدا كړى دى دكومونه چه فائده اود هغوى منفعت دې اوداسې څيزونه دانسان د پاره حرام اوگرځوى په كوموكښې چه سراسر نقصان وو ياد دين په حيثيت اوياد دنيا په حيثيت خو اكثرخلق شكر نه كوى. يعني د الله ﷻ انعامونه په خپل خان باندې حراموى او په خپلو نفسونوباندې سختي كوى. يعني دخپل طرفنه څه څيزونه حلال اوڅه حرام گرځوى. مشركانوداڅيزپخپل خان كښې ډيرخوركړي دى اوخپل مسلك ئې داسې جوړكړې دې. په اهل كتابو كښې اكثر داخبره نه وه خو هغوى هم دابدعت پيداكړو.

**د جنتيانو درې قسمونه:** دموسى بن صباح رحمه الله د الله ﷻ د ارشاد ﴿ إِنَّ اللَّهَ لَذُو فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ ﴾ باره كښې روايت دې چه د قيامت په ورځ به درې قسمه د الله ﷻ عبادت كونكي پيش كولې شي. الله ﷻ به په هغوى كښې ديوقسم نه تپوس اوكړى چه تاسو په كوم خيال باندې نيك اعمال اختياركړى وو؟ هغوى به وائي ياالله تا جنت پيدا كړو په جنت كښې ونې ميوې باغونه نهرونه حورې قصور اود اهل طاعت د پاره هرقسم نعمتونه وركړل. هم د دې د حاصلولو د پاره ما ټوله شپه په ويښه عبادت اوكړو، ټوله ورځ به مې روژه نيوله. نو الله ﷻ به اوفرمائي چه تاد جنت د پاره دا ټول اعمال كړى دى نو زه جنت ته ورشه خودا ستا د عمل بدله نه ده زه تاله د دوزخ نه خلاصي دركوم. دازما فضل دې اوتا زه په جنت كښې داخلوم. نو داسې خلق به جنت ته داخل شي. بيا به د بل قسم خلق راوغوښتې شى الله ﷻ به د هغوى نه هم داتپوس اوكړى هغوى به وائي چه ياالله تادوزخ پيداكړو، په دوزخ كښې طوق اوزنځيرونه كيخودل. په هغې كښې دې بادسموم اوآب محموم پيدا كړې. اودگناهگارانود پاره دې په هغې كښې ټول عذابونه پيداكړل. نو مابه په ويښه ټوله شپه عبادتونه كول ددوزخ د ويرې نه مې ټوله ورځ ولږه او تنده تيرولو سره روژې ساتلې. نو الله ﷻ به وائي چه واخله ما تاله د دوزخ نه خلاصي دركړو او بيا دا زما نور فضل دې چه د دوزخ نه د خلاصي سره تاله جنت هم دركوم. نو هغه به جنت ته لاړشي اوداخل به شي. اوس به دريم قسم خلق راوستلې شي اوحاضربه كړې شي. او چه كله الله ﷻ تپوس كوى نوهغه به ښائي چه اې ربه! مونږ خو ستا د شوق او ستا د محبت د پاره ستا عبادت كړې دې. ټوله شپه مو عبادت كړې او ټوله ورځ مې روژه ساتلې. صرف ستاد ملاقات دشوق او ستاد رضا دپاره. الله ﷻ فرمائي چه كله زما د ملاقات د شوق د پاره داسې كوى نو الله ﷻ به د هغوى د پاره خپل خان ښكاره

---

[1] ابوداؤد كتاب اللباس باب في الخلقان وفي غسل الثوب: ۴۰۶۳ وسنده صحيح، نسائي: ۵۲۲۶، احمد: ۴۷۳/۳، واللفظ له.

کړي. فرمائي چه اوګوره ماته په ما نظر اوکړه تاته دټولونه لویٔ دولت ملاؤشو. بیا فرمائي چه زه تاته په خپل فضل سره د دوزخ نه خلاصي هم درکوم او جنت هم تاله درکوم. زمافرښتي به تاسره حاضري وي او زه به پخپله په تاباندي خپله سلامتي نازلوم. نوداسي خلق به هم په جنت کښي داخليږي.

وَمَا تَكُونُ فِي شَأْنٍ وَمَا تَتْلُوا مِنْهُ مِنْ قُرْآنٍ وَلَا

| اونه ني ته | په هیڅ حال کښي | اونه لولي ته | دده نه | دقرآن نه | اونه

(اوائي پیغمبره) ته په هر حال کښي چي ئي او په دغي (حال) کښي هم چي قران پاک

تَعْمَلُونَ مِنْ عَمَلٍ إِلَّا كُنَّا عَلَيْكُمْ شُهُودًا إِذْ تُفِيضُونَ

کوئ تاسو اے خلقو | یوعمل | مګر | یومونږه | په تاسو باند | نظر لرونکي | کله چي | مصروف اوسئ تاسو

لولي (اوائي خلقو) تاسو هم چي څه کارکوئي انو په هرحال کښي مونږ تاسووینو ګورو | څه وخت چي تاسو

فِيهِ ۚ وَمَا يَعْزُبُ عَنْ رَبِّكَ مِنْ مِثْقَالِ ذَرَّةٍ فِي الْأَرْضِ وَلَا فِي السَّمَاءِ

په هغي کښي | اونه پټیږي | درب ستانه | په مقدار | دیوي ذرې | په زمکه کښي | اونه په آسمان کښي

په هغه کار کښي اخته يئ | اوستا دپروردګار نه لږ څیز هم پټ نشي پاتي کیدي | نه په زمکه کښي اونه په اسمان

وَلَا أَصْغَرَ مِنْ ذَٰلِكَ وَلَا أَكْبَرَ إِلَّا فِي كِتَابٍ مُبِينٍ ۝

اونه وړوکي | دهغي نه | اونه لویٔ | مګر | په کتاب | واضحه کښي |

کښي | او نه دهغي نه وړوکي اونه لوئي | مګردا ټول په پوره واضحه کتاب (لوح محفوظ) کښي لیک دی

**قوله تعالى:: فِيهِ ۚ وَمَا يَعْزُبُ عَنْ رَبِّكَ مِنْ مِثْقَالِ ذَرَّةٍ**

**د الله ﷻ ذات د هروړوکي اولویٔ څیز نه خبردار دي :-** نبي کریم ﷺ ته خبرورکولي شي چه الله ﷻ ستا د ټول امت او ټولو مخلوقاتود ټولواحوالونه په هره لحظه اوهر ساعت خبردي. یوذره څیز هم په زمکو او آسمانونوکښي که هغه سپك او وړوکي ولي نه وي په کتاب مبین کښي یعني دالله ﷻ په علم کښي شته اود هغه د پاللونه بهر کیدي نه شي. د غیبومعلومات هغه سره دی که اوچه وي که لمده د غیبو معلومات د هغه نه بغیر هیڅ څوك نه پیژني. که یوه پاڼړه هم راشوکیږي او راپریوځي یا د شپې په تیاره کښې هم یو ذره څیز چرته پروت وي اوکه یو څیز اوچ وي اوکه لوند ،به وي که خراب د ټولوعلم الله ﷻ ته دي. د ونوکانړو اوځناور هریوحرکت هغه ته معلوم دي.په زمکه چه څومره سالرونکي ځناور دی ، په هواکښي چه څومره مرغني الوزی دا هم ټولي ستاسو په شان ډلي ډلي دی.دهر سالرونکي د خوراك ذمه وارالله ﷻ دي.کله چه د دې څیزونو دحرکتونوهم هغه ته علم دي.نودانسان مکلف اوپه عبادتونو باندي مامور اعمالو اوحرکاتو به هغه ته څنګه پته نه وي. لکه چه فرمائي چه په دې عزیز او رحیم باندي یقین اوساتئ. که تاسو په مانځه کښي هم ولاړ ئي نوګوری. که سجده کوئي نو هم تاسو ویني او اوری. کله چه حضرت جبرائیل ؑ د احسان معني د حضور ﷺ تپوس اوکړو چه د دې مطلب دا دې چه تاسو د الله ﷻ د طرف نه عبادت کوئي. داسي لکه چه الله ﷻ ته ګورئي او عبادت کوئي اوکه دا نه وی نو کم نه کم داسي خیال خو کوئي چه تاسو د هغه په وړاندې ولاړ یئې او هغه تاسو ته ګوری.[1]

[1] صحیح بخاری کتاب الایمان باب سوال جبرئیل النبي ﷺ عن الایمان والاسلام: ۵۰، صحیح مسلم:۹-۱۰.

| أَلَآ | إِنَّ | أَوْلِيَآءَ اللّٰهِ | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| واورئ | بیشکه | دوستان دالله چي دي | | | |
| لَا خَوْفٌ | عَلَيْهِمْ | وَلَا هُمْ | يَحْزَنُونَ | الَّذِينَ | اٰمَنُوا |
| نه به وي یره | په هغوئ باند | اونهٔ به هغوئ | غمجن کیږي | هغه دوستان | چي ایمان ئي راوړو |
| واورئي چي دالله ﷻ په دوستاسو به نه ویره وي \| اونه به غمژن شي \| داهغه کسان دي چي ایمان ئي | | | | | |
| وَكَانُوا | يَتَّقُونَ | لَهُمُ | الْبُشْرٰى | فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا | وَفِي الْاٰخِرَةِ |
| اووؤ هغوئ | چي خان ئي ساتو | هغوئ لره دي | زیري | په ژوند ددنیا کښي | او په آخرت کښي |
| راوړو \|او پرهیزګاري ئي اختیار کړه \|ادوئ دپاره هر طرف ته زیري دي \|په دنیا کښي او په آخرت کښي | | | | | |
| لَا تَبْدِيلَ | لِكَلِمٰتِ اللّٰهِ | ذٰلِكَ | هُوَ الْفَوْزُ | الْعَظِيمُ | |
| نشته هیڅ بدلون | خبرو دالله لره | دا زیري | هم داکامیابي ده | لویه | |
| هم دالله ﷻ خبري نه بدلیږي \|هم دغه لویه کامیابي ده \| | | | | | |

**قوله تعالی:: اَلَآ اِنَّ اَوْلِيَآءَ اللّٰهِ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ**

**دالله ﷻ په دوستاوبه هیڅ اندیښنه نه وي:-** دالله ﷻ ارشادکیږي چه اولیاء الله هغه خلق دي چه د ایمان راوړونه پس پرهیزګاري هم اختیاروي.اوڅوك چه پرهیزګار وي هغه د الله ولي دي.که د آخرت احوالو سره هغه مخامخ کیږي نو د هغه به هیڅ ویره نه وي اونه به هغه د دنیاڅه غم او خفګان راګیر کړي.

**ولي چا ته وئیلې کیږي؟::**عبدالله بن مسعود‌رضي الله عنه او ابن عباس رضي الله عنه وائي چه اولیاء الله هغه خلق دي چه هر وخت د الله ﷻ په ذکر او فکرکښې لیدلې شي. د ابن عباس‌رضي الله عنه نه روایت دې چه یوسړي دحضورﷺ نه تپوس اوکړو یارسول اللهﷺ! اولیاء الله څوك دي؟ وئې فرمائیل چه هغه خلق کله چه ئې ګوري د الله ﷻ په ذکر کښې به مشغول وي[1] د حضرت ابوهریره‌رضي الله عنه نه روایت دې چه حضورﷺ فرمائیلي چه د الله ﷻ په بندیګانوکښې داسې هم بندیګان شته چه انبیاء او شهداء هم په هغوی فخرکوي. چه نه د مال څه تعلق اونه دنسب څه تعلق او صرف د الله ﷻ د پاره یو بل خوښوي.دهغوی مخونه نوراني دي اوهغوی د نور په منبرونودي. خلق چه په کوم ځائ کښې د ویرې نه رچیږي نو هلته به هغوی باندې هیڅ ویره هم نه وي. په خلقو باندې غم او خفګان شروع وي او دهغوی دې سره هډو څه کار نشته[2] دحضرت ابومالك اشعري‌رضي الله عنه نه روایت دې حضورﷺ فرمائیلي چه د مختلفو قبیلونه او څلورو واړو طرفونه به راجمع کیږي او په هغوی کښې به هیڅ خپلولي نه وي خوهغوی به صرف دالله ﷻ درضادپاره یو بل سره دوستانه په خلوص او محبت ساتي.د قیامت په ورځ به الله ﷻ د هغوی د پاره د نورمنبرونه قایموي په کومو چه به هغوی ناست وي. خلق به په قیامت کښې پریشانه ګرځي خو هغوی به مطمئن وي. د الله ﷻ اولیاء هم دغه خلق دي.

**د بشرئ نه څه مراد دي ؟::**د ابوالدرداء‌رضي الله عنه نه چا د حضورﷺ وضاحت ﴿لَهُمُ الْبُشْرٰى فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَفِي الْاٰخِرَةِ﴾ باره کښې تپوس اوکړو نوونئ وئیل چه د بشارت نه ښه خوبونه مراد دي. کوم چه څوك مسلمانان وینی یا نورو ته د دې متعلق خوب خودلې شي. ابوالدرداء رضي الله عنه اوفرمائیل چه تامانه دا سوال اوکړو اود دې نه

---

[1] طبراني:۱۲۳۲۵.

[2] ابن حبان:۵۷۳وسنده صحیح، وله شاهد صحیح عندابي داود:۳۵۲۷،عن عمر‌رضي الله عنه السنن الکبری للنسائي:۱۱۱۲۳٦

وراندې یووخت یو سړي د نبي کریم ﷺ نه سوال کړې وواوحضورﷺ فرمائیلي وو چه دا رښتوني خوبونه ځوك اووینې یا د ده په حق کښې بل څوك اووینی نودا د دنیا په ژوندکښې هم د هغه د پاره زیرې دې اوپه آخرت کښې دجنت زیرې دې(۱) عباده بن صامت ﷺ ته هم حضورﷺ دا فرمائیلي وو چه تا نه وراندې مانه چا دا سوال نه ووکړې. د بشرې نه رویائي صالحه مراد دی.

ښه خوب د نبوت څلورڅلویښتم جزء دې::ابن صامت ﷺ د رسول الله ﷺ نه تپوس کړې وو په دې آیت کښې خودآخرت زیرې جنت دې خود دنیا د بشارت اوزیری نه څه مراد دی؟ حضورﷺ اوفرمائیل چه رښتونی خوبونه چه څوك اووینې یا د هغه په حق کښې چاته اوخودلې شی اودا رښتونی خوبونه هم د نبوت د اویاؤ یا څلور څلویښت جزونونه یو جزء دې(۲) حضورﷺ اوفرمائیل چه یوانسان ښه عمل کوی اوخلق دهغه تعریف کوی نودا دمؤمن د پاره په دنیاکښې د جنت زیرې دی(۳) اودا د نبوت په یوکم پنځوس جزونوکښې یو جز دې. نو چه څوك ښه خوب اووینې نو هغه دې د خلقو په وراندې بیانوی او چه څوك خراب خوبونه اووینی نودا د شیطان د طرف نه وی او هغه د دوی د ویرولو د پاره داسې کوی. نوبکاردی چه خپل ګس طرف ته درې ځل توکی اود الله ﷻ تکبیراولولی اوچاته دې نه بیانوی(۴) په یوبل ځائې کښې د نبوت په شپږ څلویښتم جزکښې ګرځولې شوې دې(۵) حضرت ابوهریره ﷺ فرمائي چه ښه خوبونه د الله ﷻ زیری دی. ونیلې شوی دی چه د دې نه مراد دا دی چه د مؤمن دمرګ په وخت کښې فرښتې ده ته د جنت او ښښنې زیرې ورکوی. د الله ﷻ ارشاد دې ﴿إِنَّ الَّذِينَ قَالُوا رَبُّنَا اللَّهُ ثُمَّ اسْتَقَامُوا﴾ کوم خلق چه د دې خبرې قائل دی چه هم الله ﷻ زمونږ رب دې او بیا تر مرګه پورې په دې خبره قایم هم وی نو په ده به فرښتې نازلیږی او ورته به وائی چه مه ویریږه او مه غم کوه تاته د هغه جنت زیرې دې د کوم وعده چه تاسره کړې شوې ده. او په آخرت کښې مونږ ستا والیان یو. تاچه څه غوښتل تاته ملاؤشو دا د الله ﷻ چه رحیم ذات دې د طرفه تاته تحفه ده. په حدیث براء ﷺ کښې دی چه کله د مؤمن د مرګ وخت وی نود روښانه مخونو اوسپینو لباسونو فرښتې هغه له راځی او وائی چه اوس اې پاکه روحه د راحت او ریحان طرف ته روان شه، الله ﷻ تانه ناراض نه دې نو دا روح به د هغه د خلې نه داسې راوځی لکه د مشك د خلې نه چه اوبه راوځی.لکه چه الله ﷻ فرمائیلی د قیامت خوفناك حالت به هغه نه ویروی. فرښتې به هغه ته وائی چه دا هم هغه ورځ ده د کومې چه تاسره وعده وه.(۶) په دغه ورځ به د مؤمنانو په وراندې نور روان وی مخامخ هم او ښی طرف ته هم. نن تاته زیرې دې د جنت د کوم لاندې چه د همیشه د پاره بهیدونکې نهرونه روان دی دا ډیره لویه کامیابی ده.

| وَلَا يَحْزُنْكَ | قَوْلُهُمْ | إِنَّ الْعِزَّةَ | لِلَّهِ | جَمِيعًا ۚ | هُوَ السَّمِيعُ | الْعَلِيمُ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوند دې کړی غمجن تالره | خبری ددوی | بیشکه چې عزت | الله لره دې | تول | هغه اوریدونکې | پوهه دې |

اواې پیغمبره ددوی (کافرو) خبرې دې تا نه غمژن کوی. اغلبه تول الله ﷻ دپاره ده. هغه هرڅه اوری ډیره ښه پوهه

---

(۱) احمد:۵/۳۴۳وسنده حسن، شعب الایمان:۹۰۰۱، المعجم الکبیر: 3432 شرح السنة:۳٤٦٤.

(۲) ترمذی کتاب الرؤیا باب لهم بشری فی الحیوة الدنیا:۲۲۷۳وهوحسن.

(۳) صحیح مسلم کتاب البر والصلة باب اذا الثی علی الصالح فهی بشری ولاتضره:۲٦٤۲، ابن ماجه:٤۲۲٦، احمد:۵/۱۵٦، ابن حبان:۳٦٦.

(۴) احمد:۲/۲۱۹-۲۲۰، شعب الایمان:٤۷۲٦وسنده حسن.

(۵) سنده حسن اوګورئی سابقه حواله.

(۶) د دې معنی روایت احمد:٤/۲۸۷وهوحدیث صحیح مشهور، الاعمش صرح بالسماع عندابی داؤد، حاکم: ۱/۳۷ کښې موجود دې

أَلَآ إِنَّ لِلّٰهِ مَن فِي ٱلسَّمٰوٰتِ وَمَن فِي ٱلْأَرْضِ ۗ

خبر دار شئ بيشكه الله لره دى | هغه څوك | چې په اسمانونو كښې دى | اوهغه څوك | چې په زمكه كښې دى

دې | واورئې چې دا ټول هرڅه دالله ﷻ دى | چې په اسمانونو كښې او په زمكه كښې دى | او كوم

وَمَا يَتَّبِعُ ٱلَّذِينَ يَدْعُونَ مِن دُونِ ٱللّٰهِ شُرَكَآءَ ۚ إِن يَتَّبِعُونَ

اونۀ كوى پيروى | هغه كسان | چې رابلى يې دوى | بې د | الله نه | شريكان | نۀ كوى پيروى هغوئ

خلق چې د الله ﷻ نه سوا نورو (دخان نه جوړكړو) شريكانو ته اواز كوى | (خبر يې چې هغوئ په څه پسې

إِلَّا ٱلظَّنَّ وَإِنْ هُمْ إِلَّا يَخْرُصُونَ ﴿٦٦﴾ هُوَ ٱلَّذِى جَعَلَ

مګر دګمان | اونۀ دى هغوئ | مګر | قياسونه چلوى | هغه | هغه ذات دى | چې جوړه نې كړه

روان دى | هغوئ صرف په ګمان پسې روان دى | او تش اټكلونه چلوى | الله ﷻ هغه ذات دې چې

لَكُمُ ٱلَّيْلَ لِتَسْكُنُوا فِيهِ وَٱلنَّهَارَ مُبْصِرًا ۚ

ستاسو دپاره | شپه | دپاره ددې چې تاسو ارام حاصل كړئ | په هغې كښې | اوورځ | روښانه |

ستاسو دپاره ئې شپه جوړه كړې ده | چې ارام په كښې اوكړئى | اوورځ ئې روښانه جوړه كړې ده | چې په كښې ليدل

إِنَّ فِي ذٰلِكَ لَءَايٰتٍ لِّقَوْمٍ يَسْمَعُونَ ﴿٦٧﴾

بيشكه | په دې كښې | نښې دى | دپاره دهغو خلقو | چې اورى |

كولې شئ | بيشكه دې كښې د (پيغمبر دخبرو) اوريدونكو دپاره دليلونه موجود دى

قوله تعالى:: جَعَلَ لَكُمُ ٱلَّيْلَ لِتَسْكُنُوا

**د شپې تياره دسكون سبب اود الله ﷻ د قدرت نښه ده:-** الله ﷻ رسول اللهﷺ ته ارشاد فرمانى چه د مشركانوداوينادې تاخفه نه كړى ته په هغوى باندې غالب راتلودپاره دالله ﷻ نه دعاغواره،په هغه باندې بهروسه كوه.هرقسم عزت او غلبه دالله ﷻ اود رسولﷺ اومؤمنانود پاره ده.هغه د خپلو بنديګانو خبرې اورى د هغوى احوال پيژنى.د آسمانونو اوزمكو بادشاهى هم د الله ﷻ ده. مشركان چه دكومو بتانو عبادت كوى هغوى نه په ضرر باندې اونه په نفع باندې قادر دى، نه د دې مشركانوسره څه معقول دليل شته. هغوى خود دروغو اټكلى خبرو قياسونو پيروى كوى. بيا ارشاد كيږى چه الله ﷻ د خپل بنديګانود پاره شپه جوړه كړه د دې د پاره چه د ورځې د ستړى والى نه سكون او آرام حاصل كړى او ورځ ئې د معاش ګټلودپاره روښانه جوړه كړه. هغوى په ورځ كښې سفركوى اوپه رڼاكښې دهغوى نور مصالح دى. د دې دليلونواوريدو سره عبرت حاصلونكود پاره په دې آياتونوكښې نښې دى او هغه د خالق په عظمت باندې دليل راوړى.

قَالُوا ٱتَّخَذَ ٱللّٰهُ

| اووئيل كافرانو | نيولې دى | الله

| څينې خلق وائى

وَلَدًا ۗ سُبْحٰنَهُۥ ۖ هُوَ ٱلْغَنِىُّ ۖ لَهُۥ مَا فِي ٱلسَّمٰوٰتِ وَمَا

خوئې | پاكې ده هغه لره | هغه بې نيازه دې | هغه لره دى | هغه څه | چې په اسمانونو كښې دى | اوهغه

چې الله ﷻ خان له خوئې نيولې دې | الله ﷻ پاک دې | هغه غنى دې | هر څه چې په اسمانونو كښې دى

| عَلَى | أَتَقُولُونَ | بِهٰذَا | مِّنْ سُلْطٰنٍ | إِنْ عِنْدَكُمْ | فِي الْأَرْضِ |
|---|---|---|---|---|---|
| په | آیا وایئ تاسو | په دې خبره | خه دلیل | نشته ستاسو سره | چې په زمکه کښې دی |

او په زمکه کښې دی | ټول دهغه ملکیت دی | تاسو سره (دشرک) په دې خبره هیڅ دلیل نشته دې

| يَفْتَرُونَ | إِنَّ الَّذِينَ | قُلْ | مَا | لَا تَعْلَمُونَ | اللّٰهِ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې تړې هغوئ | بیشکه هغه کسان | ورته او وایه | دهغې | چې نه لرئ تاسو علم | الله باندې هغه خبرې |

ایا تاسو په الله ﷻ پورې داسې خبرې تړئ | چې پخپله تړې نه هم خبر نه یئ | او وایه چې څوک په الله ﷻ

| مَرْجِعُهُمْ | ثُمَّ إِلَيْنَا | فِي الدُّنْيَا | مَتَاعٌ | لَا يُفْلِحُونَ | عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ |
|---|---|---|---|---|---|
| واپس راتلل دی د هغوئ | بیا | په دنیا کښې | نفع اغستل دی | انشی موندې خلاصې | په الله باندې دروغ |

دروغ تړی | هغوئ خلاصیدې نشی | په دنیا کښې لږ شان مزې دې او کړی | بیا ئې مونږ ته واپسی ده

| يَكْفُرُونَ | كَانُوا | بِمَا | الْعَذَابَ الشَّدِيدَ | نُذِيقُهُمُ | ثُمَّ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې کفر به ئې کولو | چې وو هغوئ | په سبب دهغې | سخت عذاب | مونږ مزه او څکوو هغوئ ته | بیا به |

نو مونږ به ورته دسخت عذاب مزه اوڅکو | څکه چې دوئ به کفر کولو |

**قوله تعالی: قَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا سُبْحٰنَهُ**

د الله ﷻ نه څه اولاد شته او نه شریک. په دې کښې تردید دې دهغه خلقو کوم چه د دې قائل دی چه نعوذبالله د الله ﷻ هم څوك څوئ شته. هغه خو پاك الله دې. هغه اولادخو څه چه د هرڅیز نه بې نیازه دې اوهرموجودڅیز د هغه د کرم محتاج دې. زمکه آسمان او په دې کښې هرڅه ټول د هغه دی. نو بیا به هغه خپل مملوك او خپل بندیگان څنګه خپل څوئ جوړکړی. اې مؤمنانو تاسوسره خودا دلیل شته خو هغوی سره دخپل کذب او بهتان هیڅ دلیل نشته. تاسوخوهیڅ هم نه پیژنئ اودعوې کوئ. دا د مشرکانودپاره یوزبردسته تنبیه ده. دا کافران چه وائی چه دالله ﷻ هم یوڅوئ پیدا شوې دې. دا یو داسې خرابه ګستاخی ده چه دې اوریدوسره آسمان اوشلیږی، زمکه اوشلیږی، غرونه راپریوځی نو هیڅ عجیبه خبره نه ده. د الله ﷻ د پاره دا چرته ضروری کیدې شی چه د هغه هم چرته څوك څوئ وی. زمکه اوآسمان خو ټول د هغه ممنون دی اودهغه پیداوښ دی. ټول دهغه په شمیرکښې دی او هغه د دې شمیر پیژنی هریوبه په خان له توګه د هغه سره حاضری کوی. بیا دې بهتان لګونکو کافرانوته الله ﷻ دهمکی ورکوی چه دوی به په دین اودنیاکښې چرته خلاصې نه بیاموموی. خو چه په دنیاکښې دوی ته څه ملاویږی هغه د هغوی د پاره د عذاب ذریعه ده اود هغوی د پاره ډهیل دې چه د څه وخته پورې د دنیا د قلیل متاع نه فائده واخلی بیا خو به دوی یو زبردست عذاب سره ټکراوبږی. دا دنیا خود هغوی د پاره دیوڅو ورځو راحت دې. بیا به هم زمونږ طرفته واپس کیدل وی. هلته به مونږ دوی ته د سخت عذاب مزه وراوڅکوو. دابه د هغوی د کذب افترا او کفر په سبب وی.

| إِنْ | يٰقَوْمِ | لِقَوْمِهٖ | قَالَ | إِذْ | نُوحٍ | نَبَأَ | عَلَيْهِمْ | وَاتْلُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| که چرې | اے زما قومه | قوم خپل ته | او ونیل هغه | کله چې | دنوح | قیصه | په هغوئ باندې | او اولوله |

او دوی ته د (حضرت) نوح ﷺ قصه واوروه | چې هغه خپل قوم ته او ونیل | ائې خما قومه که په

كَانَ كَبُرَ عَلَيْكُمْ مَّقَامِيْ وَتَذْكِيْرِيْ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ فَعَلَى اللّٰهِ

وی | ګران | په تاسو باندې | اوسیدل زما | اونصیحت درکول زما | په آیتونو دالله سره | نو په الله باندې

تاسو کښې زما اوسیدل او د الله په اياتونو سره تاسو ته نصیحت کول په تاسو بنه نه لګی نو خما په الله

تَوَكَّلْتُ فَاَجْمِعُوْٓا اَمْرَكُمْ وَشُرَكَآءَكُمْ ثُمَّ لَا يَكُنْ اَمْرُكُمْ عَلَيْكُمْ

برومه کړې ده ما | نو راجمع کړئ | کار خپل | اوشریکان خپل | بیا | دنه وی | کارستاسو | په تاسو باندې

توکل دی | نو تاسو خپله فیصله اوکړئ او خپل شریکان راجمع کړئ | بیا په خپله فیصله غور او فکر

غُمَّةً ثُمَّ اقْضُوْٓا اِلَيَّ وَلَا تُنْظِرُوْنِ ۝ فَاِنْ تَوَلَّيْتُمْ

پټ | بیا | فیصله اوکړئ | زما خلاف | اومهلت مه راکوئ ماته | نو که چرې | مخ واړوئ تاسو |

اوکړئ | چې څۀ په کښې درنه پټ پاتې نشی | بیا ماسره خپله خوښه اوکړئ || او هیڅ مهلت مه راکوئ

فَمَا سَاَلْتُكُمْ مِّنْ اَجْرٍ ؕ اِنْ اَجْرِيَ اِلَّا عَلَى اللّٰهِ ۙ وَاُمِرْتُ

نونه دې غوښتلې ما ستاسو نه | څه اجر | نه دې اجر زما | مګر | په الله باند | اوحکم شوی دې ماته

اوکه تاسو هم دغسې مخ اوګرځولو نو (خما مو څه تاوان اوکړو) زۀ خو ستاسو نه ددې څه بدله

اَنْ اَكُوْنَ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ ۝ فَكَذَّبُوْهُ فَنَجَّيْنٰهُ وَمَنْ

چې شم زۀ | د مسلمانانو نه | نودروغ اوګڼړو هغوئ هغه لره | نو بچ کړو مونږه هغه | او هغه څوک

نه غواړم اخما بدله خو په الله ﷻ باندې ده | ........اوماته دا حکم دی | چې په فرمان بردارو کښې

مَّعَهٗ فِي الْفُلْكِ وَجَعَلْنٰهُمْ خَلٰٓئِفَ وَاَغْرَقْنَا الَّذِيْنَ

چې د هغه سره وو | په کشتئ کښې | اوجوړ کړل مونږه هغوئ | خلیفګان | اوډوب کړل مونږه | هغه کسان

دې شامل یم اخو (بیا هم) هغوئ نوح ﷺ دروغژن اوګڼړلو اونومونږ هغه او د هغه ملګرو ته په بیړئ کښې نجات ورکړو

كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا ۚ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُنْذَرِيْنَ ۝

چې دروغ ئې ګڼړلې وو | آیتونه زمونږه | نواوګوره | څرنګ | وو | انجام | د ویرولې شوو خلقو |

او هم هغوئ مو (په زمکه) آباد کړل | او هغه ټول خلق مو ډوب کړل اچې زمونږ آیتونه ئې دروغ ګڼړلی وو

نو لږ اوګوره چې د هغې ویرولوشوو انکاریانو انجام څه شو

**قوله تعالی:: وَاَغْرَقْنَا الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا**

**د نوح ﷺ دقوم تباهی اوبربادی:-** اې نبی ﷺ د مکې کافرانوته کوموچه ته درغ ګنړلې او ستا مخالفت نی کړی ته د نوح ﷺ اود هغه د قوم واقعات واوروه چا چه د خپل پیغمبر ﷺ تکذیب اوکړونو الله ﷻ هغه څنګه هلاک کړل.اوهغوی نی په اوبوکښې څنګه غرق کړل.دې دپاره چه دوی دمخکینو افسوناک نتیجې اوریدو سره هوښیار شی چه چرې دوی هم د هلاکت سره مخ نه کړې شی. هغه واقعات داسې چه کله نوح ﷺ خپل قوم ته اوونیل که چرته هم داسې زما ستاسو په مینځ کښې وراندې کیدل اوتاسو په نیغه لار راوستلو نصیحتونه ګران تمامیږی نو خیرماته هم څه پرواه نشته زما یقین او بهروسه خو په الله ﷻ ده. په تاسو باندې ګران تمامیدلو سره خو زه د تبلیغ نه منع کیدې نه شم. بنه ده تاسو اوستاسو

شریکان یعنی بتان دکوموچه تاسو عبادت کوئي ټول یوځانی شئ اوپه خپلو کوششونو کښې هیڅ کمی مه پریږدئی او د هرقسمه نه خپل ځان مضبوط کړئی. که ستاسو هم دغه ګمان وی چه تاسو په حقه نی نوزماپه حق کښې خپله فیصله ښکاره کړئی او ماته د یو ساعت مهلت مه راکوئي. خومره چه څه کولې شئ نواوکړئی.ماته نه ستاسو څه پرواه شته اونه څه ویره ځکه چه پوهیږم چه ستاسو د قیاس بنیاد څو هیڅ هم نه دي.

**د هود علیه السلام خپل قوم ته نصیحت::** هودﷺهم خپل قوم ته هم داسې وئیلي وو چه زه هم الله ﷻ ګواه جوړوم او تاسو هم ګواه اوسیږئی چه تاسو الله ﷻ پریږدئی او بتان الله ﷻ سره شریکان جوړوئی. زه ددې ذهنیت نه بالکل خلاص یم. که اوس غواړئی نو تاسو ټول زما خلاف سازش اوکړئی اوماته د یو ساعت هم مهلت مه راکوئي. زما یقین په الله ﷻ باندې دې چه زما هم رب دې اوستاسو هم رب دې. اوس که تاسو تکذیب اوکړو او مخ مو واړولو نو آیا ماته ستاسو نه څه ملاویدل د کومې د ضائع کیدو چه به زه افسوس کوم. زه چه دا ستاسو خیرخواهي کوم په دې تاسو نه څه اجرت خو نه غواړم. ما ته خواجر راکونکې الله ﷻدې. ماته دا تاکیددې چه د ټولو نه وړاندې زه ایمان راوړم اوپه ما باندې فرض دی چه د اسلام د احکاموپوره والې اوکړم ځکه چه د ټولو انبیاؤعلیهم السلام دین اسلام وو که هغه په شروع کښې وویا آخر کښې. طریقه کار اومذهب که جدا وو نوجداکیدو کښې څه بدیت نشته د توحید تعلیم خو هم یو دې.دالله ﷻ ارشاد دې چه مونږدهر یو دپاره یویو شریعت اوځان له ځان له قانون او جدا جدا لاره جوړه کړې ده.دا نوحﷺ دې چه وائي ماته حکم راکړې شوې دې چه زه د ټولونه اول ایمان راوړم.د حضرت ابراهیمﷺ باره کښې الله ﷻ فرمائي چه کله د هغه رب تعالی هغه ته اووئیل چه ایمان راوړه نوهغه زر اووئیل چه ما ایمان راوړو. ابراهیمﷺ خپلو ځامنو او نمسو اسماعیلﷺ او یعقوبﷺ ته هم نصیحت کړې وو چه اې زما ځامنو الله ﷻ ستاسود پاره دین اسلام خوښ کړې دې په دې وجه اسلام اختیار کړئی وړاندې د هغې نه چه تاسو ته مرګ راشي.یوسفﷺ هم وئیلی ووچه اې اللهٔ تاماته بادشاهت راکړو اود خبرې د توجیه اوتاویل تعلیم دې راکړو، د زمکې او آسمان پیداکونکې هم ته ئې. په دنیااو آخرت کښې زما ولی ئې. که زه مرکیږم نو چه په اسلام باندې قایم مرشم اوما د صالحینوپه ډلې کښې شامل کړه.

موسیﷺ وئیلي ووچه اې خلقوا که تاسو مسلمانان ئې نو هم په الله ﷻ باندې بهروسه اوساتئی او هم په هغه باندې ایمان راوړئی. د موسیﷺ د زمانې جادوګرو وئیلي وو اې ربه! مونږ ثابت قدم اوساتې او په اسلام باندې مرګ راکړې. بلقیس وئیلي وو اې اللهﷻ! زه د حدودو نه وړاندې شوې ووم، زه اسلام راوړم او د اسلام لار اختیاروم.د الله ﷻ ارشاد دې چه مونږ کوم توراة نازل کړې دې هغه سراسر نور او هدایت دې. په مسلمانانو باندې نبیﷺ هم د دې په ذریعه حکم قایم کوی. د الله ﷻ ارشاد دې چه حواریین د حضرت عیسیﷺ باندې هم مونږ القا کړې وه چه په ماباندې او زما په رسول باندې ایمان راوړئی. هغوی اووئیل چه اې اللهٔ مونږ ایمان راوړې او ته ګواه اوسه چه مونږ مسلمانان یو.

خاتم الرسل سیدالبشرﷺ فرمائیل چه زما مونځ او زما عبادت زما ژوند او زما مرګ ټول هم د الله ﷻ د پاره دی د چا چه څوک شریك نشته. زه هم د هغه دحکم مامور یم اواول هم زه اسلام راوړم[1] حضرت محمدﷺاوفرمائیل چه مونږ د انبیاؤ علیهم السلام ډله لکه چه علاتی رونړه یو چه دټولو پلار یو وی او میندې جداجدا.یعنی زمونږ د ټولودین یودې اوهغه دیورب عبادت دې سره د دې چه د ټولو شریعتونه جدا جدا وی[2] بیا فرمائي چه مونږه نوحﷺاود هغه په دین باندې تلونکی په کشتئ کښې کینول او

---

[1] صحیح مسلم کتاب صلاة المسافرین باب صلاة النبیﷺودعائه باللیل: ۷۷۱.
[2] صحیح بخاری کتاب احادیث الانبیاء باب قول الله تعالی ﴿واذکرفی الکتاب مریم اذ انتبذت من اهلها...﴾: ۳۴۴۳، صحیح مسلم: ۲۳۶۵.

خلاصې مو ورکړو او هغه مو په ځمکه باندې د خلیفه په حیثیت سره مقرر کړو. او چا چه زمونږ خبرې دروغ ګڼړلې وې هغه مو غرق کړل. ګوره د دغه بدنصیبو څنګه خراب حشرشو.(اې محمد ﷺ!) ګوره مونږه مؤمنانوته څنګه خلاصې ورکړو او نامنونکې مو څنګه هلاك کړل.

| ثُمَّ بَعَثْنَا | مِنْ بَعْدِهٖ | رُسُلًا | إِلٰى قَوْمِهِمْ | فَجَآءُوْهُمْ | بِالْبَيِّنٰتِ |
|---|---|---|---|---|---|
| بیا اولیږل مونږه | روستودهغه نه | نوررسولان | خپلوخپلوقومونوته | نوراغلل هغوئ ته | دواضحه نښوسره |
| بیا مو دهغه نه پس نور پیغمبران خپلو خپلو قومونو ته اولیږل انوهغوئ ورته ښکاره دلیلونه پیش کړل | | | | | |

| فَمَا كَانُوْا | لِيُؤْمِنُوْا | بِمَا | كَذَّبُوْا | بِهٖ | مِنْ قَبْلُ ط |
|---|---|---|---|---|---|
| نونه وو هغوئ | چې ایمان ئې راوړې وې | په هغې څیزا | چې دروغ ئې ګڼړلې وو | هغه | دمخکښې نه |
| اخو هغوی په هغې څیز ایمان راونړلود کوم نه ئې چې وړاندې انکار کړې وو | | | | | |

| كَذٰلِكَ | نَطْبَعُ | عَلٰى قُلُوْبِ | الْمُعْتَدِيْنَ۝ |
|---|---|---|---|
| هم دارنګې | مونږمهروهو | په زړونوباند | دحدنه داوړیدونکوخلقو |
| مونږ دغسې دسرکشو په زړونو باندې مهر لګوو | | | |

قوله تعالى:: ثُمَّ بَعَثْنَا مِنْۢ بَعْدِهٖ رُسُلًا

دنوح ﷺ نه پس د نبوت سلسله جاري وه:- د الله ﷻ ارشاد دې چه مونږ د نوح ﷺ نه پس نور رسولان هم دخپلوخپلو قومونوطرف ته په ښکاره دلیلونو اومعجزو ورکولوسره اولیګل خوچه هغوی څنګه تکذیب کړې ووبه هغې باندې قایم پاتې شو او د وړاندینو رسولانو تکذیب کونکې خو وواوس نې په دې رسولانوباندې هم ایمان راونړلو. لکه څنګه چه الله ﷻ فرمائی چه مونږ به د هغوی د زړونو او سترګو نه دپوهیدلواولیدلوصلاحیت واخلو اوددې سرکشو په زړونوبه مهر اولګوو. لکه څنګه چه وړاندینو خلقو د پیغمبرتکذیب کړې وونومونږدهغوی په زړونومهرلګولې وو.دغه شان موددې ګمراهانونه منونکو په زړونوباندې هم مهراولګولو او چه ترکومې هغوی دردناك عذاب سره مخ کړې شوې نه وی یقین به اونه کړی. مطلب دا چه د رسولانوتکذیب کونکې امتونه الله ﷻ هلاك کړل او چه کومو خلقو په رسولانو باندې ایمان راوړو هغوی ته خلاصې ورکړې شو. دا د نوح ﷺ نه پس د خلقو ذکر دې ګنې د آدم ﷺ د زمانې نه پس خلق په اسلام باندې قایم وو او خو روستو په هغوی کښې د بتانود عبادت رواج شروع شو. په دې وجه الله ﷻ دهغوی طرف ته نوح ﷺ اولیګلو.ددې دپاره خوبه د قیامت په ورځ نوح ﷺ ته مؤمنان خلق وائی چه ته رومبې پیغمبرئې چه الله ﷻ زمکې ته لیګلې ئې(١)

**د نوح علیه السلام د قوم نه وړاندې خلق مسلمانان وو شرك نه وو::** د ابن عباس ﷺ نه روایت دې د آدم ﷺ او نوح ﷺ په مینځ کښې لس صدئی تیرې شوې وې اودا ټول د اسلام په مذهب باندې قایم وو(٢) نوالله ﷻ فرمائی چه د نوح ﷺ نه پس څومره زمانې مونږ ختمې کړی.د پورته ذکر شوی آیت په ذریعه دعربومشرکان ویرولې شوی دی چه د خاتم الرسل ﷺ تکذیب کولو.دوړاندینوپیغمبرانوبه تکذیب کولو الله ﷻ دعذاب ورکولو دومره ذکر کړې دې نوقریشو ته درسول ﷺ په تکذیب کولو باندې سوچ پکار دې چه دوی خو دهغوی نه هم د لوئ ګناه کونکې جوړیږی. دا خوخاتم الانبیاء ﷺ دې اوس به بیا نه یو نبی راشی اونه به دوی ته د هدایت بله موقعه ملاوشی.

---

(١) صحیح بخاری کتاب احدیث الانبیاء باب قول الله تعالی ﴿ولقدارسلنا نوحاالی قومه﴾: ٣٣٤٠، صحیح مسلم:١٩٤.
(٢) الحاکم:٢/٢٦٢.

ثُمَّ بَعَثْنَا مِنْ بَعْدِهِمْ

| بیا | اولیږل مونږه | وروستو دهغوی نه

| بیا مو ددغې

مُوسٰى وَهٰرُوْنَ اِلٰى فِرْعَوْنَ وَمَلَا۟ئِهٖ بِاٰيٰتِنَا فَاسْتَكْبَرُوْا

موسی | اوهارون | فرعون ته | اوسردارانو دهغه ته | دِنښو خپلو سره | نوتکبر اوکړو هغوی

(پیغمبرانو) نه پس حضرت موسی ﷺ او حضرت هارون ﷺ دواړه فرعون اودهغه درباریانو ته په خپلو

وَكَانُوْا قَوْمًا مُّجْرِمِيْنَ۝ فَلَمَّا جَآءَهُمُ الْحَقُّ مِنْ عِنْدِنَا قَالُوْٓا

اوو هغوی | قوم | مجرمان | نوهرکله چې | راغي هغوی ته | حق | دطرفه زمونږنه | نواووئيل هغوی

نښو سره اولیږل | خو هغوی لوئی اوکړه | اودغه خلق (زاړه) مجرمان وو | اوکله چې ورته زمونږ د طرفه حق

اِنَّ هٰذَا لَسِحْرٌ مُّبِيْنٌ۝ قَالَ مُوْسٰٓى اَتَقُوْلُوْنَ لِلْحَقِّ لَمَّا جَآءَكُمْ ؕ

بیشکه دا جادو دې | ښکاره | اووئیل موسی | ایاوایئ تاسو | حق ته | هرکله چې راغي تاسو ته

ورغلو | نو هغوی اووئیل چې دا خو ښکاره جادو دې | حضرت موسی ﷺ اووئیل چې تاسو دهغې حق

اَسِحْرٌ هٰذَا ؕ وَلَا يُفْلِحُ السّٰحِرُوْنَ۝ قَالُوْٓا اَجِئْتَنَا

آیا جادو دې دا | اونهٔ مومې بري | جادوګران | اووئیل هغوی | آیا راغلې ئې تهٔ مونږ ته

تعلیم په باره کښې چې تاسو ته راغلې دې داخبره کوئی | چې دا (په رښتیا) جادو دې | او جادوګر

لِتَلْفِتَنَا عَمَّا وَجَدْنَا عَلَيْهِ اٰبَآءَنَا

دپاره ددې چې واړوې مونږه | دهغه طریقې نه | چې موندلې دی مونږه | په هغې باندې | پلاران زمونږه

خو هیڅکله نه کامیابیږی | هغوئ جواب ورکړو | آیا | ته مونږ ته ددې دپاره راغلې یې | چې مونږ

وَتَكُوْنَ لَكُمَا الْكِبْرِيَآءُ فِى الْاَرْضِ ؕ وَمَا نَحْنُ لَكُمَا بِمُؤْمِنِيْنَ۝

اوجې شي | ستاسو دواړو دپاره | لوئي | په زمکه کښې | اونهٔ یو مونږه | تاسو دواړو لره | منونکې دخبرو

هغې لارې نه بل طرفته واړوې چې پلار نیکه مو پرې روان موندلی وو او چې دملک مشری ستاسو د

دواړو شي | او مونږ خو تاسو دواړه هیچرې نه منو

قوله تعالیٰ: ثُمَّ بَعَثْنَا مِنْ بَعْدِهِمْ مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ

موسی ﷺ اوهارون ﷺ دفرعون طرف ته :- بیا ددې رسولانو نه پس مونږ د فرعون اود هغه د ملګرو طرفته موسی ﷺ اوهارون ﷺ اولیګلو اوخپلې نښې دلیلونه او معجزې موورکړې خود حق خبرې د منلونه اودطاعت اوانقیادنه دې مجرم قوم انکار اوکړو. اوکله چه هغوی ته زمونږ دطرفنه د حق امر راورسیدو نوبې دتامل نه هغوی اووئیل چه دا خو ښکاره جادو دې نو لکه چه هغوی په خپله سرکښئ کښې قسم خوړلې وو سره د دې چه د هغوی یقین وو چه دوئ څه وائی په حقیقت کښې دروغ او بهتان دې لکه چه پخپله الله ﷻ فرمائی هغوی انکار خوکوی ولې د هغوی زړه پخپله یقین لرې چه دا زمونږ ظلم اوسرکشی ده. غرض دا چه حضرت موسی ﷺ تردیداً اوفرمائیل چه حق خبره مخې ته راشی نو

وانی چه داخو جادو دي حالاتکه جادوګرخودخیر اوخلاصی مخ نه شی لیدلې.هغه منکران وانی چه اې موسیﷺ ته ددې دپاره مونږ له راغلې چه مونږ دخپل پلار نیکه ددین نه واروې اوبیا تول عظمت ریاست غلبه هرڅه ستا دپاره اوستا د رور هارونﷺ د پاره شی مونږ خو هیڅ کله تاسو منونکی نه یو.

**د شروع نه الله ﷻ د موسی علیه السلام رعب په فرعون اچولې وو:: الله ﷻ په خپل کتاب کښې د** موسیﷺ او فرعون قصه څو ځل ذکر فرمانیلې ده ځکه چه هغه عجیبه قصه ده. فرعون خو د اول نه د موسیﷺ نه په ویره کښې وو. خود قدرت نظاره اوګوره د چانه چه فرعون دومره ویریدلو الله ﷻ هم هغه د فرعون په کور کښې لوئی کړو اود شهزادګانو په شان موسیﷺ د هغه په کور کښې پاتې شو. بیا یو انقلاب راغلو اوداسې یوسبب جوړشو چه هغه د فرعون د کورنه اووتلو او الله ﷻ په نبوت رسالت او مخامخ خبرو سره سرفراز کړو. بیا هم د دې فرعون طرف ته راولیګلې شو چه لاړشه او د اسلام دعوت ورکړه چه هغه زمونږ طرف ته رجوع اوکړي او د بې دینئی په ځای باندې زمونږ په دین روان شی. حالاتکه کوم عزت اوشرافت چه فرعون ته حاصل وو نوهغه خو وو.

**فرعون خپلې سرکشئ دې انجام ته اورسولو::**موسی ﷺ د الله ﷻ پیغام سره راغې اود هغویﷺ رور هارون ﷺ نه علاوه بل څوك امدادی نه وو. خو فرعون سرکښی اوکړه او غرور نی اوکړو. په هغه کښې بې ځایه تکبر پیداشو د هغه خبیث نفس راوچت شو هغه د موسی ﷺ نه مخ واړولواو دعوی نی اوکړه دکومې چه د هغه هیڅ حق نه وو. په بغاوت اوسرکشئ سره ئې دبنی اسرانیلو مؤمنانو اهانت اوکړو. په داسې نازك موقف کښې هم د فرعون د لاس نه موسیﷺ اوهارون ﷺ محفوظ پاتې کیږی الله ﷻ هغوی پخپل حفاظت کښې اخلی او پرله پسې د موسی سره مقابله او مجادله کیږی اوموسی ﷺ داسې داسې معجزې او نښې پیش کوی چه عقلونه حیران پاتې شی او منلې کیږی چه د الله ﷻ د طرف نه د تائید کیدونکی نه علاوه بل څوك داسې دلیلونه نه شی پیش کولې. د یوې نښې نه بله لویه نښه پیش کولې شی خو فرعون اود هغه ملګرو هم قسم خوړلې وو چه نه به منو خو چه کله عذاب راغلو نو داسې راغلو چه چا هم دا ردکولې نه شو او هغه ټول په یوه ورځ غرق کړې شو اود هغه ظالم قوم بیخ اووتلو.

| وَقَالَ | فِرْعَوْنُ | ائْتُونِي | بِكُلِّ سٰحِرٍ عَلِيمٍ ۝ | فَلَمَّا | جَاءَ | السَّحَرَةُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اواووئیل | فرعون | چې راولئ تاسو ماته | هر جادوګر | ماهر | نوهرکله چې | راغلل جادوګران |
| اوفرعون (خپلوسړوته) اووئیل چې مالره ټول ماهر جادوګر راولئ کله چې جادوګر راغلل | | | | | | |

| قَالَ | لَهُمْ | مُوسٰى | أَلْقُوا | مَا | أَنْتُمْ | مُلْقُونَ ۝ | فَلَمَّا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اووئیل | هغوئ ته | موسی | چې اوغورزوئ | هغه | چې تاسو ئې | غورزونکی | نوهرکله چې |
| نو حضرت موسی ورته اووئیل چې پش کول غواړئ هغه رامیدان ته کړئ ............ هرکله | | | | | | | |

| أَلْقَوْا | قَالَ | مُوسٰى | مَا | جِئْتُمْ | بِهِ | السِّحْرُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوغورزوو هغوئ خپل جادو | نواووئیل | موسی | هغه څیز | چې راوړې دې تاسو | هغه | جادو دې |
| چې هغوئ پړې (رسئ) اوغورزول ............ نو حضرت موسی ﷺ اووئیل چې دا خو جادو دې | | | | | | |

| إِنَّ اللّٰهَ | سَيُبْطِلُهُ | إِنَّ اللّٰهَ | لَا يُصْلِحُ | عَمَلَ الْمُفْسِدِينَ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| بیشکه الله چې دې | زربه باطل کړی هغه | بیشکه الله | نه سموی | کار دفساد کونکو |
| چې تاسو راوړئ دې (خما تعلیم جادو نه دې، دا به الله ﷻ اوس باطل کړی بیشکه الله ﷻ | | | | |

| وَيُحِقُّ | اللّٰهُ | الْحَقَّ | بِكَلِمٰتِهٖ | وَلَوْ كَرِهَ | الْمُجْرِمُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوحق ثابتوي | الله | حق لره | په فرمانونو خپلو سره | اګر که نه خوښوي ئې | مجرمان |

| دفسادیانو کار له سمون نه ورکوي \|\|والله ﷻ دخپلي وعدې مطابق حق غالب کوي \|\|ګر که د مجرمانو ناخوښه وي |
|---|

قوله تعالی :: قَالَ لَهُمْ مُّوْسٰى اَلْقُوْا

دموسیؑ اوجادوګروومقابله:- الله عزوجل د جادوګرو اوموسی ؑ قصې ذکر په سورة اعراف کښې فرمائیلې دي.او لته په دې قصه باندې رڼرا اچولې شوې ده. په دې سورة کښې سورة طه او سورة شعراء کښې هم ذکر دي. چه فرعون اراده اوکره چه د موسی ؑ د ښکاره حق معارضه د جادوګرو په خرافاتواو جادوګرئی سره اوکړي. خو پخپل دام کښې پخپله راګیر شو.هغه په مقصدکښې ناکامه شو اوپه عام محفل کښې د الله ﷻ ثبوت غالب راغلو او ټول جادوګر په سجده کښې پریوتل او وئې وئیل چه مونږ خو په رب العالمین باندې ایمان راورو کوم چه د موسیؑ او هارون ؑ رب دی. د فرعون خودا ګمان وو چه د جادوګرو په امداد به هغه د الله ﷻ په رسول باندې غالب راشي خود ناکامۍ مخ نې اولیدلو اود دوزخ لائق شو. فرعون حکم ورکړې وو چه د ملك د هر ګوټ نه ساحران راجمع کړئی. دې ساحرانوته موسی ؑ اوفرمائیل چه خپل څه عمل کول غواړئی نو اوکړئی اودائی خکه اووئیل چه فرعون هغوی سره وعده کړې وه که غالب شوئې نو تاسو خلق به زما مقربین شئی اوتاسو ته به لوئی انعام او اکرام درکولې شی. ساحرانو وئیل موسی(ؑ)! ته خپل کار مخکښې کوې که مونږ ئې اوکړو. موسیؑ اوفرمائیل چه هم تاسو اول اوکړئی. په دې غرض ئې اوفرمائیل چه خلق اووینی چه دا جادوګرڅه څیز پیش کوي او بیا دې د هغې نه پس حق مخامخ شي چه باطل ښکته کړي. کله چه جادو ګروخپلې رسئی واچولې اودخلقو په سترګو ئې جادواوکړو اودارسئ ماران جوړشواوخلق اوویریدل. دیر لوئ جادو ئې پیش کړو موسی ؑ هم اوویریدلو، مونږ اووئیل موسی ؑ! ویریږه مه هم ته به غالب راځې. دخپل لاس همسا په میدان کښې اوغورزوه هغه به هم اژدهاجوړه شي اود هغوی ماران به لواړ تیرکړي. د ساحرانو دا کرتب خود جادو لوبه وه او جادو خوکله هم کامیابیدې نه شي او الله ﷻ به حق ثابتوي. که په ګناهګارانو باندې ناخوښه ولې نه وي.

**دا ایتونه د سحر نه د شفاء کار ورکوي::** د ابن ابی سلیم رحمه الله نه روایت دې چه دا آیاتونه د الله ﷻ په حکم باندې دسحر نه دشفا کار ورکوي.دا آیاتونه اولولئی اوپه اوبوباندې چپ کړئی بیا چه په چا سحر شوې د هغه په سر ئې واړوئی. هغه دا د سورت یونس آیاتونه دي چه دا دی. ﴿ فَلَمَّآ اَلْقَوْا قَالَ مُوْسٰى مَا جِئْتُمْ بِهِ السِّحْرُ اِنَّ اللّٰهَ سَيُبْطِلُهٗ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُصْلِحُ عَمَلَ الْمُفْسِدِيْنَ ۝ وَيُحِقُّ اللّٰهُ الْحَقَّ بِكَلِمٰتِهٖ وَلَوْ كَرِهَ الْمُجْرِمُوْنَ ﴾ اودوه آیاتونه نوردې چه دا دي ﴿ فَوَقَعَ الْحَقُّ وَبَطَلَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴾ او ﴿ اِنَّمَا صَنَعُوْا كَيْدُ سٰحِرٍ وَلَا يُفْلِحُ السّٰحِرُ حَيْثُ اَتٰى ﴾

| فَمَآ اٰمَنَ | لِمُوْسٰى | اِلَّا | ذُرِّيَّةٌ | مِّنْ قَوْمِهٖ | عَلٰى خَوْفٍ | مِّنْ فِرْعَوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نو ایمان رانوړو | په موسی باندې | مګر | اولاد | دقوم دهغه نه | سره ډیرې | دفرعون نه |

| نو د حضرت موسی ؑ خبرې نور چا اونه منلې خوصرف دهغه د خپل قوم بعضې کشرانو اومنلې |
|---|

| وَمَلَا۟ئِهِمْ | اَنْ يَّفْتِنَهُمْ | وَاِنَّ | فِرْعَوْنَ | لَعَالٍ |
|---|---|---|---|---|
| اودسردارانودهغوئ نه | چې په عذاب کښې به مبتلاکړي هغوئ لره | اوبیشکه | فرعون | خامخا دغلبې خاوندوو |

| دفرعون اودهغه قوم دسردارانو دویرې چې په مصیبت کښې ئې اخته کړي \|\|وبیشکه فرعون ......... |
|---|

| فِي الْأَرْضِ | وَإِنَّهُ | لَمِنَ الْمُسْرِفِينَ |
|---|---|---|
| په زمکه کښې | او بیشکه هغه | خامخا دحدنه داوړیدونکو نه وو |
| په ملک کښې د ډیر زورخاوند وو | اوهغه به ډیر زیاتې کولو | |

**قوله تعالى:: وَإِنَّ فِرْعَوْنَ لَعَالٍ فِي الْأَرْضِ**

**د فرعون زړورتیااوسرکشي:-** الله ﷻ خبرورکوی چه موسی ﷺ کوم آیات بینات پیش کړل نود فرعون قوم اود هغه ذریات نه ډیرکمو خلقو ایمان راوړو د ایمان راوړونکو خوانانواوقوم د خلقو دا ویره وه چه په زورسره به هغوی بیا دکفر په حالت راواپس کړې شی ځکه چه فرعون ډیر عیارسرکش وواود هغه رعب او دبدبه ډیره اوچته وه.دهغه قوم د هغه نه ډیر ویریدلو. په غیرېنی اسرائیلوکښې صرف د فرعون ښځې اود آل فرعون نه یوسړی اود فرعون خزانچی اودهغه ښځه بس دغه وړوکې شان ډله وه چه ایمان نی راوړلې وو.

**د نه څوک مراد دی؟::** دابن عباس ﷺ نه روایت دې چه ﴿إِلَّا ذُرِّيَّةٌ مِّن قَوْمِهِ﴾ نه د موسی ﷺ قوم بنی اسرائیل مراد دی مجاهد ﷺ فرمائی چه د ﴿ذُرِّيَّةٌ﴾ نه مراد د هغه خلقو اولاد مراد دې د چا طرف ته چه موسی ﷺ لیګلې شوې وو او ډیره موده وراندې دا اولاد پریخودې وو مړه شوی وو.ابن جریر ﷺ د ﴿ذُرِّيَّةٌ﴾ باره کښې د مجاهد ﷺ قول خوښوی چه هغه د فرعون د قوم نه نه وو بلکه د بنی اسرائیلونه وو ځکه چه کله ضمیر راجع کیږی د نیزدې طرف ته راجع کیږی اودلته نیزدې د موسی ﷺ لفظ دې نه چه د فرعون.اودا د غور وړخبره ده ځکه چه ﴿ذُرِّيَّةٌ﴾ نه مرادخوانان خلق دی اوهغه دبنی اسرائیلو نه وو مشهوره ده چه بنی اسرائیلو خو ټولو په موسی ﷺ ایمان راوړلې وو او هغوی ته زیرې ورکړې شوې وواو هغوی د موسی ﷺ د صفاتونه ښه خبر شوی وو اوهغوی ته د مقدسو کتابونو نه زیرې ملاؤشوې وو چه الله ﷻ به هغوی ته د فرعون نه خلاصې ورکړی او په فرعون باندې نی غالب جوړوی. د دې د پاره چه کله فرعون ته داخبره معلومه شوه نو ډیرپه احتیاط سره اوسیدلو اوچه کله موسی ﷺ د تبلیغ په سلسله کښې فرعون له راغلو نو فرعون بنی اسرائیلو ته ډیرتکلیفونه رسول نو هغه اووئیل چه موسی ﷺ ستا دراتلونه اول هم مونږ ډیر په تکلیف کولې شواو ستا د راتلو نه پس هم په تکلیف کولې شو. موسی ﷺ اوفرمائیل چه لږ شان صبر اوکړئ الله ﷻ به ډیر زر ستاسو دښمن هلاک کړی او د هغه جانشین به تاسو جوړکړی او ګورو به چه اوس به تاسو پخپله څنګه عمل کوئې.اوچه کله دا خبره ده ﴿ذُرِّيَّةٌ﴾ دموسی ﷺ قوم یعنی بنی اسرائیلو علاوه څوک مراد کیدې شی. بنی اسرائیلو ته د فرعون او بیا دخپلې ډلې نه ویره وه چه هغوی به دوی بیا کافران کړی او په بنی اسرائیلوکښې د قارون نه علاوه بل څوک داسې نه وو چه د هغوی نه هغه ویریدلې وو ځکه چه قارون د موسی ﷺ د قوم نه وو خو باغی وو اوفرعون سره ملاؤشوې وو. دلته د ﴿وَمَلَئِهِمْ﴾ ضمیر د بنی اسرائیل طرف ته تلې دې. خوڅوک چه دا وائی داضمیر فرعون اود عمائدینو طرف ته ځی ځکه چه د هغه عمائدین هم د هغه د تابعدارانونه وو یا دا چه د فرعون وراندې د آل لفظ محذوف اوګنړلې شی ځکه چه د جمع ضمیر دې اود مضاف په ځائ مضاف الیه کیخودې شوې دې یعنی د آل په ځائ فرعون کیخودې شوې دې نو دا دقیاس نه لرې خبره ده سره د دې چه ابن جریر ﷺ دا دواړه خبرې لیکلی دی. دا ټول بیان په دې دلالت کوی چه په بنی اسرائیلوکښې ټول مؤمنان وو.

| |
|---|
| وَقَالَ مُوسَىٰ يَٰقَوْمِ |
| او اوونيل موسی \| اے قومه زما |
| او موسیٰ ﷺ اوونيل چې اې خما قومه |
| إِن كُنتُمْ ءَامَنتُم بِٱللَّهِ فَعَلَيْهِ تَوَكَّلُوٓا۟ إِن كُنتُم مُّسْلِمِينَ ۝ |
| که یئ تاسو \| چې ايمان موراوړي وی \| په الله باندې \| نو په هغه باندې \| بروسه کوئ \| که یئ تاسو \| حکم منونکی |
| که تاسو په (رښتيا په) الله ﷻ تعالی ايمان راوړي وی نو په هغه باندې بهروسه هم اوساتئ |
| فَقَالُوا۟ عَلَى ٱللَّهِ تَوَكَّلْنَا رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِّلْقَوْمِ |
| نو اوونيل هغوئ \| په الله باندې \| بروسه اوکړه مونږ \| اے ربه زمونږه \| مه جوړوه مونږه \| فتنه \| دپاره دقوم |
| که تاسو فرمانبردار یئ نو هغوئ جواب ورکړو چې زمونږ په الله ﷻ توکل دی اې زمونږ ربه ته مونږ |
| ٱلظَّٰلِمِينَ ۝ وَنَجِّنَا بِرَحْمَتِكَ مِنَ ٱلْقَوْمِ ٱلْكَٰفِرِينَ ۝ |
| ظالمانو \| او خلاصی راکړه مونږ له \| په رحمت خپل سره \| دقوم کافرنه |
| د ظالمانو دپاره فتنه مه ګرزوئی \|............ په خپل رحمت مو دکافرانو نه خلاص کړې |

**قوله تعالی:: فَعَلَيْهِ تَوَكَّلُوٓا۟**

په الله ﷻ باندې بهروسه اود هغه عبادت.-الله ﷻ فرمائی چه موسیٰ ﷺ بنی اسرائيلوته اوونيل که چرې تاسوهم په الله ﷻ باندې ايمان لرئی نوپه هغه باندې بهروسه اوکړئی الله ﷻ دبهروسه کونکو کفيل کيږی.اواکثرخلې عبادت اوتوکل ملاؤکړې شوې دې ﴿قُلْ هُوَ ٱلرَّحْمَٰنُ ءَامَنَّا بِهِۦ وَعَلَيْهِ تَوَكَّلْنَا﴾ وغيره.اوالله ﷻ مؤمنانوته حکم ورکړې دې چه په هرمانځه کښې ډيرخل داوائي﴿إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ﴾ نو بنی اسرائيلو حکم اومنلو او وئی وئيل﴿ عَلَى ٱللَّهِ تَوَكَّلْنَا رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِّلْقَوْمِ ٱلظَّٰلِمِينَ﴾ مونږ خو په الله ﷻ باندې يقين کوو ياالله مونږ د دې ظالمانو د زور زياتی نه اوساتې.ګنی هغوی به ګمان کوی چه هم هغوی په حقه دی او دا بنی اسرائيل په باطل باندې دی. او هغوی به په مونږ باندې نور هم ظلمونه اوکړی اود آل فرعون په لاسونو مونږ ته عذاب مه راکوې او نه مونږ په خپلو عذابونوکښې اخته کړې ګنی د فرعون قوم به وائی که چرې داخلق په حق باندې وې نو په عذاب کښې به نه راګيريدل او مونږ به په دوی غالب نه راتلو او يا الله مونږ ته په خپل رحم او فضل سره ددې کافر قوم نه خلاصې راکړې. داکافران دی اومونږ مؤمنان يو اوهم په تاباندې مو توکل دی.

| |
|---|
| وَأَوْحَيْنَآ إِلَىٰ مُوسَىٰ وَأَخِيهِ أَن تَبَوَّءَا لِقَوْمِكُمَا بِمِصْرَ |
| اووحی اوکړه مونږه \| موسی ته \| اوورورد هغه ته \| چې جوړ کړئ دواړه \| دپاره دقوم خپل \| په مصر کښی |
| اومونږ حضرت موسی ﷺ اود هغه رور ته وحی اوکړه اچې تاسو د خپل قوم دپاره په مصر کښې کوروته |
| بُيُوتًا وَٱجْعَلُوا۟ بُيُوتَكُمْ قِبْلَةً وَأَقِيمُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ ۗ وَبَشِّرِ ٱلْمُؤْمِنِينَ ۝ |
| کورونه \| اوجوړ کړئ \| دخپلو کورونو نه \| قبله \| اوقائم کړئ مونځ \| اوزيرې ورکړه \| مومنانو له |
| جوړ کړئ \| اوخپل کورونه د مانځه ځايونه جوړ کړئی \| او د مانځه پابندی ساتئ او ته مومنانو ته زيرې ورکړه |

**قوله تعالى:: وَأَوْحَيْنَآ إِلَىٰ مُوسَىٰ وَأَخِيهِ**

**بنى اسرائيلوته دمانځه حكم:-** الله ﷻ دبنى اسرائيلو د فرعون نه د خلاصى سبب بيانوى چه موسى ﷺ او هارون ﷺ ته مونځ حكم وركړو چه ته دخپل قوم سره مصر ته لاړشه اوسيږه﴿وَاجْعَلُوا بُيُوتَكُمْ قِبْلَةً﴾ كښې دمفسرينو اختلاف دې. ابن عباس‎ وائي چه دې نه مراد دا دې چه تاسو هم خپل كورونه جماتونه جوړكړئي.اوابراهيم ﷺ وائي چه بنى اسرائيل ويريدل په دې وجه حكم وركړې شو چه هم په كورونو كښې مونځ كوئي اود دې حكم حيثيت بالكل داسې دې چه كله د فرعون اود هغه د قوم نه راګيرول او مصيبتونه اوتكليفونه ډيرسخت شو نود ډيرو مونځونوحكم وركړې شو.لكه چه د الله ﷻ ارشاد دې ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا ٱسْتَعِينُوا بِٱلصَّبْرِ وَٱلصَّلَوٰةِ﴾.

**دمصيبت په وخت كښې مونځ ته متوجه كيدل پكاردي::** په حديث شريف كښې هم دى چه كله به نبى كريم ﷺ څه وخت كښې ويريدلو نوپاسيدو به او په مانځه سره به ئې امداد حاصلولو[1] څكه په دې آيت كښې دى چه هم كورونه جماتونه اوګرځئي اومونځونه كوئي اومؤمنانو ته د ثواب او نيزدې امداد زيرې وركړه.دابن عباس‎ نه روايت دې چه بنى اسرائيلوموسى ﷺ ته ونيلي ووچه مونږ دفرعونيانو په وړاندې په ښكاره مونځ نه شوكولې.نوالله ﷻحكم وركړوچه بنه ده په كورونوكښې مونځ كوئي. مجاهد‎ وائي چه بنى اسرائيلوته د فرعون ويره وه چه كه په جمات كښې مونځ كوو نو قتل به كړې شو په دې وجه ئې اوونيل چه چپ چاپ په كورونوكښې مونځ كوئي او كورونه يويل ته مخامخ جوړكړئي.

| وَقَالَ مُوسَىٰ | رَبَّنَآ | إِنَّكَ | ءَاتَيْتَ | فِرْعَوْنَ | وَمَلَأَهُۥ | زِينَةً |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اواوونيل موسى | اې ربه زمونږه | بيشكه تا | وركړي دي | فرعون ته | اوسردارانو دهغه ته | ښائست |
| او موسى ﷺ اوونيل اې زمونږ پروردګاره | | | تا فرعون ته اودهغه سردارانو ته په دې دنياوي ژوند | | | |
| وَأَمْوَٰلًا | فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا | رَبَّنَا | لِيُضِلُّوا | عَن سَبِيلِكَ | | |
| اومالونه | په ژونددنيا كښى | اې ربه زمونږه | دپاره ددې چې بې لارې كړي خلق | دلارې ستا نه | | |
| كښې ډيرښائست سامان او ډير مالونه وركړى دى | | | نتيجه ئې دا چه اې ربه هغوئ ستادلارې نه خلق ګمراه كوي | | | |
| رَبَّنَا | ٱطْمِسْ عَلَىٰٓ أَمْوَٰلِهِمْ | وَٱشْدُدْ | عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ | فَلَا يُؤْمِنُوا | | |
| اې ربه زمونږه | هلاك كړه مالونه ددوئ | اومهراولګوه | په زړونوددوئ باند | چې ايمان رانوړى دوئ | | |
| اې ربه ددوئ مالونه ختم كړې | | او زړونه ئې دومره سخت كړه چې هيڅرې ايمان رانه وړې | | | | |
| حَتَّىٰ | يَرَوُا | ٱلْعَذَابَ | ٱلْأَلِيمَ | قَالَ | قَدْ أُجِيبَت | دَّعْوَتُكُمَا |
| ترهغې پورې | چې اووينې دوئ | عذاب | دردناك | اوونيل الله | چې قبوله كړې شوه | دعاستاسودواړو |
| ترڅې چې دردناك عذاب اووينى | | | | الله ﷻ ورته اوونيل چې ستاسو دواړو دعا قبوله شوه | | |
| فَٱسْتَقِيمَا | وَلَا تَتَّبِعَآنِّ | سَبِيلَ ٱلَّذِينَ | لَا يَعْلَمُونَ | | | |
| نو مضبوط شئ دواړه | او هركز پيروى مه كوئ تاسو | دلارې دهغه كسانو | چې علم نه لرى | | | |
| نو پخپله لار قائم اوسيږئى | | اودهغه چا په لارمه ځئ | چې نه پوهيږى | | | |

---

[1] ابوداؤد كتاب التطوع باب وقت قيام النبى ﷺ من الليل:۱۳۱۹.

قوله تعالى:: وَقَالَ مُوسٰى رَبَّنَا

دموسى عليه السلام اوهارون عليه السلام د الله ﷻ نه دعا. الله ﷻ خبرورکوي چه کله فرعون او د هغه دلې د حق د قبلولونه انکار اوکړو اوپخپله ګمراهئ او کفرباندې قايم پاتې شو، ظلم او سرکشي ئي اختيارکړه نو موسى عليه السلام الله ﷻ ته عرض اوکړو ياربه! تا فرعون اودهغه خلقو ته ددنيا سامان او ډير مال په دنيا کښې ورکړې دې سره خو به هغه نور هم اوران شي او يابه نور خلق خراب کړي.

په لِيُضِلُّوا کښې دوه توجه دي:: (لِيُضِلُّوا) دياپه فتحې سره دامعنى شوه چه تادوى ته نعمتونه ورکړي حالانکه ته پوهيږې چه هغوى ايمان نه راوړى اوستاچه په هغه کومې مهربانئ دى هغه د دې خبرې لکه چه ثبوت دې هغه تادوست ساتلې دې نوځکه خو تا هغه خوشحال ساتلي نو لکه دا لار شوه د دې خبرې چه هم د هغه په وجه دا خلق بې لارې شو يا اله د دوى مالونه هلاك کړې. او نور مفسرين د ياء په پيښ سره وائي يعنې چې نور خلق ګمراه کړي (رَبَّنَا اطْمِسْ) ضحاك رحمه الله او ابوالعاليه رحمه الله وغيره وائي چه الله ﷻ د هغوى مالونه کاڼړى کړل او هغه کاڼړى هم هغه شان منقوش جوړشوى وو کوم حالت کښې چه هغه مالونه په خپل اصلي حالت کښې وو. قتاده رحمه الله وائي چه زمونږ په علم کښې داخبره راغلې ده چه د هغوى غلې هم دکاڼړوشکل اختيارکړې وواوچينې وغيره. نى هم دکاڼړو په شکل کښې راغلى وو. محمدبن کعب رحمه الله دحضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله په وړاندې د سورة يونس تلاوت اوکړو او چه کله دې آيت ته اورسيدو (رَبَّنَا اطْمِسْ عَلٰى أَمْوَالِهِمْ) نوعمر رحمه الله اووئيل اې ابوحمزه دطمس څه مطلب دې نو ابو حمزه اووئيل د هغوى مال اومتاع کاڼړى شوى وو. نو عمر بن عبدالعزيز رحمه الله خپل غلام ته اووئيل چه هغه تهيلئ راوړه. نو په هغې کښې چڼړې او هګئ کيخودلې شوې وې کوم چه کاڼړى شوى وو.

د موسى عليه السلام دعا هم د نوح عليه السلام د دعا پشان وه:: الله ﷻ ارشاد (وَاشْدُدْ عَلٰى قُلُوبِهِمْ) يعنې اې الله ﷻ د هغوى په زړونوباندې مهر اولګوه چه د دردناك عذاب راتلوپورې هډو ايمان رانوړى. دا دعاکله چه موسى عليه السلام په غصه کښې راغلې وو اود فرعون اودهغه د قوم په حق کښې کړې وه. د چا باره کښې چه حضرت موسى عليه السلام ته يقين شوې وو چه اوس په دوى کښې د اصلاح صلاحيت نشته اود دوى نه اوس د خير څه اميد پاتې نه شو لکه څنګه چه نوح عليه السلام وئيلې وو (رَبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْأَرْضِ مِنَ الْكَافِرِينَ دَيَّارًا) اې الله! دې کافرانوکښې يوکور هم پرينږدې که ته دوى ژوندى پريږدې نو دوى به ستا نور بنديګان هم ګمراه کړي او ددوى چه څومره هم اولاد وى هغوى به کافران او هم کافران پيداکيږى.

موسى عليه السلام به دعاکوله او هارون عليه السلام به امين وئيلو:: څکه الله ﷻ دموسى عليه السلام دعا قبوله کړه او د هغه رور حضرت هارون عليه السلام په هغې باندې امين اووئيل. الله ﷻ فرمائي چه ستاسو دواړو دعا قبوله شوه او آل فرعون به هلاك کولې شي. هم د دې آيت نه په دې خبره دليل دې چه که مقتدى د امام په قراءت باندې آمين اووائي نودا د مقتدى هم پخپله د قرآن پاك لوستلو په منزله دې. موسى عليه السلام دعا کړې وه اوهارون عليه السلام پرې آمين وئيلې وو (فاستقيما) لکه چه ستاسو دعا قبوله کړې شوې ده. اوس تاسو هم دغه شان زماپه حکم باندې مستقيم اوسيږئ اوزما احکام نافذ کړئ. استقامت هم دې ته وائي چه د دې دعا نه څلويښت کاله پس فرعون هلاك کړې شو او بعضې وائي څلويښت ورځې پس.

| وَجٰوَزْنَا | بِبَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ | الْبَحْرَ | فَأَتْبَعَهُمْ | فِرْعَوْنُ | وَجُنُودُهُ |
|---|---|---|---|---|---|
| او پورې ايستل مونږه | بنى اسراءيل | دسمندرنه | نوروان شو په هغوى پسې | فرعون | اولښکردهغه |

اومونږ بنى اسرائيل دسمندر نه پورې ويستل انو فرعون اودهغه لښکرې ورپسې دظلم اوزياتئ په

بَغۡيًا وَّعَدۡوًاؕ حَتّٰۤى اِذَاۤ اَدۡرَكَهُ الۡغَرَقُ ۙ قَالَ

په غرض دزیاتی | اوپه غرض دظلم | تردې پورې | کله چې | راګیرکړو هغه لره | ډوب والی | نو وې وئیل

غرض روان شول | تردې چې هغه په ډوبیدو شو | نو وې وئیل چې څه ایمان راوړم

اٰمَنۡتُ اَنَّهٗ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا الَّذِىۡۤ اٰمَنَتۡ

چې ایمان راوړو ما | چې بیشکه | نشته لائق دعبادت | مګر | هم هغه دې | چې ایمان راوړې دې |

چې بل الله نشته مګر هغه دې | چې بنی اسرائیلو پرې ایمان راوړې دې

بِهٖ بَنُوۡۤا اِسۡرَآءِيۡلَ وَاَنَا مِنَ الۡمُسۡلِمِيۡنَ۝ اٰلۡـٰٔنَ وَقَدۡ عَصَيۡتَ

په هغه باندې | بنی اسرائیلو | اوزهٔ هم | په منونکو کښې یم | آیا اوس | اونافرمانی کوله تا

او په مسلمانانو کښې شاملیږم | (جواب ورکړې شو) آیا اوس ایمان راوړې اودې نه مخکښې

قَبۡلُ وَكُنۡتَ مِنَ الۡمُفۡسِدِيۡنَ۝ فَالۡيَوۡمَ نُـنَجِّيۡكَ بِبَدَنِكَ

مخکښې ددې نه | اووې ته | دفسادکونکو نه | نو نن ورځ | بچ کوو مونږ تالره | بدن ستا

خو به تا سرکشی کوله | اوپه فسادیانو کښې شامل وې | ...... نو نن به ده نن مونږ ستا ظاهری بدن

لِتَكُوۡنَ لِمَنۡ خَلۡفَكَ اٰيَةً ؕ وَاِنَّ كَثِيۡرًا

دپاره ددې چې شې ته | دپاره دهغه چا | چې روستو ستانه دی | یوه نښه دعبرت | اوبیشکه | چې ډیر

ته نجات ورکوو | ددې دپاره چې د روستو راتلونکو خلقو دپاره یوه نښه شې او ډیر خلق زمونږ

مِّنَ النَّاسِ عَنۡ اٰيٰتِنَا لَغٰفِلُوۡنَ۝

د خلقو نه | دنښو زمونږ نه | خامخا بې پروا دی |

د داسې نښونه غافل دی|

**قوله تعالی:: حَتّٰۤى اِذَاۤ اَدۡرَكَهُ الۡغَرَقُ ۙ قَالَ اٰمَنۡتُ**

**دمرګ وخت کښې دفرعون ایمان راوړل:** الله ﷻ دفرعون اودهغه دلښکر دغرقیدوکیفیت بیانوی فرمائی چه کله بنی اسرائیل دموسی ﷺ سره دمصر نه اووتل اوهغه شپږ لاکهه سپایان ووبغیرد فرعونیانونه چه ایمان نی راوړې وو. بنی اسرائیل د فرعون د قوم قبطیانو نه په کنږ شمیرکښې کالی قرض غوښتې وو او هغې سره اووتل نو د فرعون غصه نوره هم زیاته شوه. نو هغه خپل نوکران د هرملك نه د لښکر راجمع کولو دپاره اولیګل او یوعظیم لښکر سره بنی اسرائیلو پسې روان شو اود الله ﷻ خو منشاء هم دغه وه چه ددې ملك خومره مالداران او مخوریز خلق وو هیڅ یو هم د شرکت نه پاتې نه شی تول فرعون سره شو.سحر سحر هغوی بنی اسرائیل اولیدل. دې ډلوچه کله یو بل اولیدل نودموسی ﷺ ملګرو اووئیل اې موسی ﷺ!! اوس خو مونږ راګیرشو اودا د هغه وخت خبره وه چه کله بنی اسرائیل د دریاب غاړې له رسیدلې وو اوفرعونیان لااوس رستووو. دې نه باقی بل هیڅ صورت پاتې نه وو چه لښکرې دې خپل مینځ کښې اوجنګیږی. موسی ﷺ ته خلقو باربار وئیل چه اوس به څه کیږی، د فرعونیانو نه به څنګه بچ کیږو وراندې دریاب دې او شاته دښمن. موسی ﷺ به فرمائیل چه ماته خو هم دا حکم دې چه په دریاب کښې لارپیداکړه مونږ به چرې هم نه راګیرېږو زما رب زما لار خودونکې

کله چه پوره ناامیدی خوره شوه نو الله ﷻ دا په امید کښې بدله کړه او حکم ئې اوکړو چه په دي دریاب باندې خپله همسااووهه.موسی ﷺ دریاب اووهلو او دریاب اوشلیدو.د اوبوهره یوه ټکره یو لوئ غر وو.په دریاب کښې دولس لارې جوړې شوې اودهرې ډلې د پاره جدا لار جوړه شوه.د دریاب په مینځ کښې لمده خټه اوچو هواګانو زر اوچه کړه اولار د تیریدوقابله شوه. دریابی لارې اوچې شوې اوس نه د راګیریدو ویره وه او نه ددې خبرې ویره چه ډوب به شی.د اوبوپه مینځ کښې کهرکنۍ غوندې جوړې شوې وې دې د پاره چه دهرې یوې لارې خپل ملګری په دې کهرکوکښې وینی اوتسلی اوشی چه هغه نور هلاک شوی نه دی.

**د فرعونیانو د هلاکت وخت راغلو:**:اوس بنی اسرائیل د دریاب نه پورې وتل او چه کله آخری اسرائیلی هم راوختو نود فرعون لښکر د دریاب غاړې ته راورسیدو. په دې لښکر کښې خو یو لاکھ کسان صرف په تورو اسونوسواره وو د بل رنګ اسونه د دې نه سوا وو. د دې نه د فرعون دلښکر د زیاتوالی اندازه لګیدلې شی. فرعون چه کله دا هیبت ناك منظر اولیدو نو اوویریدو او د واپس کیدو اراده ئې اوکړه. خو افسوس چه اوس د خلاصی موقعه تلې وه او تقدیر نافذ شوې وو د موسی ﷺ دعا د قبولیت شرف حاصل کړې وو. جبرائیل ﷺ په یوه اسپه سور وو اود فرعون د اس خواکې تیرشو. مجبورا په دریاب کښې داخل شو خوخپله بهادری ثابتولو د پاره خپلو ملګرو امراؤ ته چغه کړه چه بنی اسرائیل زمونږ نه زیات په دریاب کښې د داخلیدو حقدار نه دی. ټول په دریاب کښې ورادوانګنی لاره جوړه شوې ده. د هغه لښکر په دریاب کښې ورننوتلو. میکائیل ﷺ ټولو پسې وو اولښکرئې ورانډې شړلو دې د پاره چه یوهم شاته پاتې نه شی. کله چه ټول په دریاب کښې داخل شو او بنی اسرائیل د دریاب نه اووتل نو الله ﷻ دریاب په خپل مینځ کښې یوځائ کړو. اوس یو فرعونی هم پاتې نه شو موجونه اوچتیدل او ښکته کیدل چپې پیدا شوې په فرعون د مرګ حالات شروع وو. اوس هغه اوونیل چه او د بنی اسرائیلو د الله ﷻ نه سوا بل دویم الله نشته زه ایمان راوړم. خوافسوس هغه هغه وخت ایمان راوړو چه د ایمان راوړوهیڅ فائده نه وه. د الله ﷻ قول دې چه کله هغه زمونږ عذاب اولیدلو نو وئې ونیل مونږ په الله واحد باندې ایمان راوړې اود کفر او شرك نه منع شو. زمونږ عذاب راتلونه پس ایمان راوړل هیڅ فائده نه ورکوی. د الله ﷻ هم دا طریقه ده. کافران خلق به په خساره کښې وی. په دې وجه الله ﷻ د فرعون په جواب کښې اوفرمائیل چه اوس ایمان راوړی اوتراوسه پورې نافرمان او کافر جوړ شوې وې او فتنې دې خورولې اوخلق دې ګمراه کول. هغوی دخلقو دوزخ ته دبوتلو دپاره دهغوی مشران جوړشوې وو اوس به هیڅ کله دهغوی امداد نه شی کولې.الله ﷻ دفرعون داخبره﴿ءَامَنتُ أَنَّهُۥ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا ٱلَّذِىٓ ءَامَنَتۡ بِهِۦ بَنُوٓاْ إِسۡرَٰٓءِيلَ﴾ نبی کریم ﷺ ته بیان کړه. دا دهغه د غیبوخبرونه وه دکومې خبر چه صرف حضور ﷺ ته شوې وو. په دې وجه رسول الله اوفرمائیل چه کله فرعون د ایمان کلمه د خُلې نه اوویستله نو جبرائیل ﷺ ماته بیان کوی اې د الله ﷻ نبی ﷺ ماد دریاب خټه د هغه په خُله کښې ورننوستله په دې وجه چه دالله رب العزت د رحمت دریاب په جوش کښې رانه شی.[1]

**د فرعون جوسه محفوظه دریاب نه بهر اوغورزولې شوه:**:د الله ﷻ ارشاد دې ﴿فَٱلۡيَوۡمَ نُنَجِّيكَ بِبَدَنِكَ لِتَكُونَ لِمَنۡ خَلۡفَكَ ءَايَةٗ﴾ اوس به مونږ ستا د روح نه ستا جوسه محفوظ کوو دې د پاره چه راتلونکو خلقو د پاره عبرت جوړشی.

**د فرعون هلاکت په لسم محرم شوې وو:**:د ابن عباس ﷺ نه روایت دې بعضې بنی اسرائیلو د فرعون په مرګ کښې شك کولونو الله ﷻ دریاب ته حکم اوکړو چه د فرعون بې روح بدن چه په هغې باندې

[1]) ترمذی کتاب تفسیر القرآن باب ومن سورة یونس:۳۱۰۷،وهوحسن، احمد:۲۴۵/۱،۱ مسندالطیالسی:۲۶۹۳.

لباس هم موجود دي د زمکې په یوه موړه باندې اوغورزوه دې د پاره چه خلقو ته د فرعون دمرګ حقیقي ثبوت ملاوشي[1] بدن یعني جوسه بغیرد روح ﴿وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ النَّاسِ عَنْ آيَاتِنَا لَغَافِلُونَ﴾ یعني اکثر خلق زمونږ د نښونه عبرت اونصیحت نه حاصلوی.

وائي چه دا هلاکت د عاشورې په موقعه شوې وو. حضور ﷺ چه کله مدینې منورې ته راغلو نو په دغه ورځوکښې یهودیانود عاشورې د ورځې روژه ساتلې وه. تپوس نې ترې اوکړو چه په دې ورځ تاسو ولې روژه ساتئې نویهودیانو اوونیل په دې ورځ موسی علیه السلام په فرعون غالب راغلې وو.نوحضور ﷺ اوفرمانیل اې زما ملګروتاسو په دې ورځ د روژې ساتلو د یهودیانونه زیات حقدار ئې په دې وجه د عاشورې روژه ساتئې.([2])

| وَلَقَدْ بَوَّأْنَا | بَنِي إِسْرَائِيلَ | | | |
|---|---|---|---|---|
| اوبیشکه خائې ورکړومونږ | بنی اسرائیلو ته | | | |
| اومونږ بنی اسرائیلو لره ډیره ښه ټیکانړه ورکړې وه | | | | |
| مُبَوَّأَ صِدْقٍ | وَرَزَقْنَاهُم | مِّنَ الطَّيِّبَاتِ | فَمَا اخْتَلَفُوا | حَتَّىٰ |
| خائې دصدق | اوورکړل مونږهغوئ لره | ښه وسائل دژوند | نواختلاف اونه کړوهغوئ | ترهغې پورې |
| او پاکیزه خوراکونه مو ورکړې وو انوهغوئ اختلاف نه وو کړې | | | ترڅو چې (دحق) علم ورته راغلو | |
| جَاءَهُمُ | الْعِلْمُ ۚ إِنَّ رَبَّكَ | يَقْضِي | بَيْنَهُمْ | يَوْمَ الْقِيَامَةِ |
| چې راغې هغوئ ته | علم ا بیشکه رب ستا | به فیصله اوکړي | په منځ دهغوئ کښې | په ورځ دقیامت |
| ...................... ابیشکه ستا پروردګار د قیامت په ورځ د دوی په هغه | | | | |
| فِيمَا | كَانُوا | فِيهِ | يَخْتَلِفُونَ | |
| په هغه څیزکښې | چې وو هغوئ | په هغې کښې | چې اختلاف به ئې کولو | |
| خبرو کښې فیصله اوکړي په کومو کښې چې به دوی اختلاف کولو | | | | |

**قوله تعالی:: وَلَقَدْ بَوَّأْنَا بَنِي إِسْرَائِيلَ مُبَوَّأَ صِدْقٍ**

**په بنی اسرائیلو دانعامونوتذکره:** الله ﷻ په بنی اسرائیلوباندې خپل خپل دنیاوی نعمتونوذکر فرمائیلو سره ارشاد فرمائی چه مونږ د اوسولو د پاره ښه خائ ورکړې وویعنی دمصر اوشام ښارکوم چه بیت المقدس ته نیزدې وو. الله ﷻ چه کله فرعون هلاك کړو نو حکومت د موسی علیه السلام د مصرپه ښار باندې قابض او متصرف شو. الله ﷻ فرمائی چه مونږ دا قوم وارث جوړکړو کوم چه په مشرق اومغرب هرخائ کښې کمزورې وو مونږ هغوی ته برکت ورکړو او بنی اسرائیلو سره ستاسو درب وعده پوره شوه ځکه چه هغوی صبرکړې وو اودفرعون قوم چه کوم محلونه او عمارتونه تیارکړې وو تول ئې تباه برباد کړل. مونږ هغوی د باغونواو چینونه بهر اوویستل. د هغوی نه خزانې واخستلې شوې اود دې ټولو مو بنی اسرائیل وارثان جوړکړل. هغوی بې شمیره باغونه او چینې پریخودې وې.

**په بیت المقدس دمختلفو بادشاهانو قبضې::** خو بنی اسرائیلو همیشه دموسی علیه السلام نه د بیت المقدس

---

[1] الطبری: ۱۵/۱۹۲.

[2] صحیح بخاری کتاب التفسیرسورة یونس ﴿وجاوزنا ببنی اسرائیل البحر فاتبعهم فرعون....﴾: ۴۶۸۰، صحیح مسلم: ۱۱۳۰، ابن حبان: ۳۶۲۵، احمد: ۷/۲۹۱.

د ښار مطالبه کوله کوم چه د خلیل الله وطن وو. په دې ورځوکښې د یروشلم په قوم باندې د عمالقه قبضه وه. بنی اسرائیلو ته هغوی سره د جنګ کولو دپاره اووئیل نوهغوی انکاراوکړونو الله ﷻ په دشت تیه کښې ورك كړل. څلویښت کاله هلته تیرشو په دې موده کښې هارون ﷺ او موسی ﷺ وفات شو. اوس بنی اسرائیل د تیه نه یوشع بن نون په ملګرتیا کښې بهراووتل او الله ﷻ بیت المقدس د هغه په لاس فتح کړو. دوی د ډیرې مودې پورې د هغوی په قبضه کښې وو. بیا بخت نصر قبضه کړو. بیا دوباره د بنی اسرائیلو قبضه شوه بیا د یونان بادشاهان په دې متصرف شو اود هغوی احکام داوږدې مودې پورې چلیدل. په دې زمانه کښې الله ﷻ حضرت عیسی بن مریم ﷺ راولیګلو.

الله ﷻ عیسی ﷺ **محفوظ اوچت کړو:**:یهودیانو دعیسی ﷺ په مخالفت کښې د یونان بادشاهانو سره سازباز اوکړو اودعیسی ﷺ چغلئی ئی خوړلې او وئیل ئی چه عیسی ﷺ په قوم کښې فتنه او فساد پیداکوی. د یونان بادشاه هغه نیولودپاره کسان واستول او په سولئی کول ئی غوښتلو خود الله ﷻ د رضامطابق په یوحواری باندې د عیسی ﷺ ګمان اوشو او هغه ئی په سولئی کړو او ګمان ئی اوکړو چه هم دا عیسی ﷺ وو. الله ﷻ فرمائی عیسی ﷺ هغوی یقیناً نه دې قتل کړې بلکه الله ﷻ خپل طرف ته اوچت کړې. الله ﷻ چه عزیز اوحکیم دې بیا د عیسی ﷺ نه تقریبادرې سوا کاله پس یو یونانی بادشاه قسطنطین نصرانی دین قبول کړو خودا فیلسوف وو. وائی چه د نصاری په دین کښې د تیه او حیله په توګه شامل شوې وو دې د پاره چه د عیسی ﷺ په دین کښې فتنه واچوی. نصرانی پادریانو د هغه په حکم سره د شریعت نوې نوې قانونونه جوړکړو. بدعتونه ئی خواره کړه او لوئ واړه کنیسې او د عبادت ځایونه ئی جوړکړه. هیاکل او معابد ئی قایم کړو. په هغه زما نه کښې نصرانیت ډیر خور شو او په هغې کښې بدلون اوتحریف اوشو. رهبانیت پیدا شو.

**د صلیب پرستئ ابتداء:**:دربښتونې مسیحی دین مخالفت اوشو. حقیقی دین په یوځو عبادت کونکو کښې باقی پاتې شو. اوس دوی هم د راهبانوپه شان په ځنګلو اومیدانونوکښې ګرجې جوړې کړې. د نصاری قبضه د شام په جزیرهاو روم په ښار اوشوه. هم دې بادشاه قسطنطنیه ښار او قمامه آباد کړل. په بیت المقدس کښې بیت لحم او کنائس جوړکړه.د حوران ښار ئی آباد کړو لکه بصره وغیره. لوئ لوئ محکم آبادئی ئی اوکړې. هم ددې ځائ نه صلیب پرستی شروع شوه او مشرق بعید پورې اورسیده او هلته ئی هم کینسې جوړې کړې. د خنزیر غوښه ئی حلال اوګرځوله د دین په فروع او اصولوکښې ئی عجیبه عجیبه بدعتونه پیداکړل. د امانت حقیره اصول وضع کولو سره امانت کبیره نوم ورکړو اود بادشاه په حکم ئی د شریعت نوې نوې قوانین جوړکړل. د دې شرح ډیره اوږده ده. غرض دا چه په دې ښارونو باندې د هغوی قبضه د صحابه کرامو ﷺ د زمانې پورې وه. تردې چه بیت المقدس د حضرت عمر بن الخطاب ﷺ په لاس باندې فتح شو. للہ الحمد علی ذلك

**دا امت به درې اویا ډلې شی:**:مونږ هغوی ته پاك پاك ځیزونه ورکړې وودې دپاره چه طیب ځیزونه اوخوری خودمذهبی معلوماتو سره هغوی اختلاف اوکړو اوداختلاف فی المذهب هیڅ وجه نه وه. الله ﷻ خو تولې خبرې بغیرد التباس نه صفا صفابیان کړې وې.په حدیث شریف کښې دی چه یهودیانو یو اویا(۷۱) فرقې جوړې کړې وې او د عیسایانو دوه اویا فرقې وی اوزما امت به درې اویا (۷۳) فرقې جوړوی په کوموکښې چه به صرف یوه جنتی وی باقی تولې به دوزخی وی. د حضور ﷺ نه تپوس اوشو هغه به څوك وی؟ حضور ﷺ اوفرمائیل په کومه چه زه اوزما صحابه کرام ﷺ روان دی[1] د دې د پاره الله ﷻ فرمائیلی دی چه زه به د قیامت په ورځ دهغوی د اختلافاتوفیصله کوم.

[1] ترمذی کتاب الایمان باب ماجاء فی افتراق هذه الامة: ۲۶۴۱، حاکم: ۱/۱۲۸.

فَاِنْ كُنْتَ فِيْ شَكٍّ
| نوكه ني ته | په شك كښې
| نوكه ستا دهغې حكمونو په حق

مِّمَّآ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ فَسْئَلِ الَّذِيْنَ يَقْرَءُوْنَ
دهغه هدايت په حقله | چې نازل كړې دې مونږه | تاته | نو تپوس اوكړو دهغه كسانونه | چې لولې هغوئ
كښې څه شك وي | چې مونږ دركړې دی | نو دهغه چا نه تپوس اوكړه | چې ستا نه مخكينی كتابونه ني

الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكَ لَقَدْ جَآءَكَ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ فَلَا تَكُوْنَنَّ
كتاب | مخكښې ستانه | بيشكه | راغلي دې تاته | حق | دطرفه درب ستانه | نومه كيږه ته
لوستل | بيشكه تاته دخپل پروردګار دطرفه حق راغلي دې | نو هرګز په شكمنو خلقو كښې مه شامليږه.

مِنَ الْمُمْتَرِيْنَ ﴿۹۴﴾ وَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ
دشك كونكو | نه | اومه كيږه ته | دهغه خلقو نه | چې دروغ ني ګڼړلي دي | ايتونه دالله
او په هغه خلقو كښې هم مه وركډيږه | چې دالله ﷻ نښې دروغ ګڼړي | ...

فَتَكُوْنَ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿۹۵﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ حَقَّتْ عَلَيْهِمْ كَلِمَةُ
نو شې به ته | دنقصان موندونكونه | بيشكه هغه كسان | چې ثابته شوې ده | په هغوئ باند | وينا
ګنې تاوانی به شې | ........بيشكه چې په چا باندې ستا د پروردګار فيصله ثابته شوې ده

رَبِّكَ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۹۶﴾ وَلَوْ جَآءَتْهُمْ كُلُّ اٰيَةٍ حَتّٰى يَرَوُا
درب ستا | نه راوړی هغوئ ايمان | اګركه راشي هغوئ ته | هره نښه | تردې پورې | چې اووينی هغوئ
هغوئ ايمان نه راوړی | ..............اګر كه هر قسم نښې ورته راشي | ترڅو چې

الْعَذَابَ الْاَلِيْمَ ﴿۹۷﴾
عذاب | دردناك |
دردناک عذاب اونه ويني |

قوله تعالى: اِنَّ الَّذِيْنَ حَقَّتْ عَلَيْهِمْ كَلِمَةُ رَبِّكَ

**د ليلونو او ثبوتو سره ايمان نه راوړي:** قتاده رحمه الله وائی چه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی چه نه زه شك كوم او نه ماته د تپوس ضرورت شته[1] په دې آيت كښې امت ته د ثابت قدم اوسيدو ترغيب وركړې شوې دی. او خودلې شوی دی چه د نبیﷺ صفت په وړاندينو كتابونو توريت، انجيل كښې موجود وو. لكه چه الله ﷻ فرمائی كوم خلق چه د نبی امی منل كوی هغه په دې بنياد چه د هغوی ﷺ صفتونه په توريت اوانجيل كښې ليكلې وينی خوسره د دې چه هغوی د نبیﷺ صداقت دومره په ښكلې طريقه پيژنی لكه چه خپل بچی خو بيا هم دا صداقت پټوی په انجيل كښې بدلون او تحريف كوی. د حجت د قايميدو سره ايمان نه راوړی. تركومې چه په خپلو ستركو عذاب اونه وينی. خو په دغه وخت كښې به

[1] الطبرى: ۲۰۲/۱۵ ،مصنف عبدالرزاق:۱۰۲۱۲ ، والتفسير له:۲۶۱/۱عن قتادة مرسلاً.

د هغوی ایمان راوړل هیڅ فائده ورنه کړی. د قوم په دې درجه باندې رسیدلو نه پس موسی ﷺ هغوی ته بددعا کړې وه چه اې الله! د دوی مالونه فناکړې اود دوی په زړونو باندې مهر اولګوې چه د عذاب نه بغیر دوی نه منې. دغه شان د الله ﷻ فرمان دې که مونږ په دوی باندې فریښته هم نازله کړو او مړی هم دوی سره خبرې اوکړی او هرڅیز د هغوی د پاره راجمع کړو بیا هم دوی ایمان راوړونکی نه دی او په دوی کښې خو اکثر پیژنی هم نه.

| فَلَوْلَا كَانَتْ | قَرْيَةٌ | اٰمَنَتْ | فَنَفَعَهَآ |
|---|---|---|---|
| نو ولې نه وه | یو کلي والا چې | ایمان نې راوړې وې | پس نفع رسولې وې هغه کلي والو ته |
| نو داسې مثال (نشته) چې یو کلی د عذاب لیدو نه پس ایمان راوړې وی | | | |

| اِيْمَانُهَآ | اِلَّا | قَوْمَ يُوْنُسَ ؕ | لَمَّآ | اٰمَنُوْا | كَشَفْنَا | عَنْهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ایمان دهغې | ماسوا | دقوم دیونس نه | کله چې | ایمان راوړو هغوی | نولرې کړومونږ | دهغوی نه |
| اوخپل ایمان ورته نفع ورکړې وی ابغیر د حضرت یونس ﷺ دقوم نه هرکله چې هغوی ایمان راوړو | | | | | | |

| عَذَابَ | الْخِزْيِ | فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا | وَمَتَّعْنٰهُمْ | اِلٰى حِيْنٍ ﴿۹۸﴾ |
|---|---|---|---|---|
| عذاب | دشرمندګۍ | په ژوند ددنیا کښې | اودفائدې اغستلو موقع ورکړه مونږ هغوی له | دیو وخت پورې |
| نومونږ ترې نه شرمونکی عذاب په دې دنیا کښې لرې کړو \| اوتر څه وخته مو آرام ورکړو | | | | |

**قوله تعالیٰ: فَلَوْلَا كَانَتْ قَرْيَةٌ اٰمَنَتْ**

**عذاب کتلوسره ایمان راوړل قبول نه وی خو دیونس ﷺ قوم الله ﷻ معاف کړو.-** په وړاندینو امتونو کښې یوامت هم ټول په ټولو ایمان نه دې راوړې کومو ته چه مونږ خپل پیغمبران لیګلې وو بلکه تانه وړاندې هم اې محمد ﷺ! کوم رسول راغلې خامخا د هغه تکذیب کړې شوې دې. لکه چه د الله ﷻ ارشاد دې چه افسوس په بندیګانو باندې چه هغوی ته رسول لیګلې شی اوهغه پورې دټوقوکولو نه بغیر نه پاتې کیږی. یا داوائی چه دا خو جادوګردې یاداچه لیونې دې[۱] کوم یو کلی ته هم چه زمونږ نبی تلې دې نودهغه ځائ خوشحالوکسانو هم داوئیلی چه مونږ خوبه دخپل پلارانو نیکونو په نقش قدم باندې خو.

په صحیح حدیث کښې دی چه انبیاء علیهم السلام زما مخکښې پیش کړې شو. یو یونبی سره به لوئ لوئ دلې د امتیانو وې او یونبی سره به هم یوکس وو او یو نبی سره به دوه کسان او چا سره خو یو هم نه وو. بیائې دموسی ﷺ دامت دکثرت ذکر اوفرمانیلو او بیا د خپل امت دکثرت ذکر کومو چه مشرق اومغرب پټ کړې وو.غرض داچه دیونس ﷺ د قوم نه علاوه یوقوم هم ټول په ټولو ایمان نه دې راوړې. دیونس ﷺ قوم اهل نینوا وو د هغوی ایمان راوړل د عذاب لیدلونه پس د ویرې په بنیاد وو. د عذاب نه په ویریدو باندې د الله ﷻ نبی د خپل قوم نه بهر وتلې وو. بیا دې خلقو ته سخت افسوس اوشو، د الله ﷻ نه نې پناه اوغوښته، الله ﷻ ته نې زاری اوفریاد اوکړو.خپل بچې اوخناور نې ټول راوړل اود الله ﷻ په وړاندې اودریدو سره زاری اوکړه چه د کوم عذاب نبی خبر ورکړې دې او بیا زمونږ نه جدا شوې دې. هغه زمونږ نه لرې کړه نوهغه وخت الله ﷻ په هغوی باندې رحم اوکړو او عذاب چه مخامخ راغلې وو اخوا شو.لکه څنګه چه الله ﷻ فرمائی چه د یونس ﷺ قوم کله ایمان راوړو نو په دنیاوی ژوندکښې په هغوی باندې راغلې عذاب مونږ اخوا کړو اوترژونده پورې مونږ هغوی د هغه

[۱] صحیح بخاری کتاب الرقاق باب یدخل الجنة سبعون الفابغیرحساب: ۶۵۴۱، صحیح مسلم: ۲۲۰.

عذاب نه بچ اوساتل.

**قوم یونس ددنیا اواخرت دواړو عذابونو نه بچ شو:**: دمفسرینوپه دې کښې اختلاف دې چه آیاصرف دنیاوی عذاب ترې اخوا شوکه د آخرت عذاب هم. بعضې وائي چه صرف ددنیا عذاب ځکه چه د آیت نه صرف په دې باندې رنړا پریوځي.او بعضې وائی چه د الله ﷻ قول دې چه مونږ نبی د یولاکه نه زیاتو کسانوته لیګلې وو هغوی ایمان راوړو او د مقرر مودې پورې مونږ هغوی مستفید کړل. دلته د ایمان لفظ مطلق دې بغیرد قید نه او مطلق ایمان خو د آخرت د عذاب نه خلاصې ورکونکې دې. والله اعلم.
قتاده رحمه الله ددې آیت په تفسیرکښې لیکلي دی چه د عذاب څکلونه پس کوم قوم ایمان راوړې نو نه شې پریخودې خوچه کله یونس علیه السلام خپل قوم پریخودونوهغه خلق پوهه شو چه اوس د عذاب نه خلاصې نشته نو دهغوی په زړونوکښې دتوبې جذبه راپیدا شوه.هغوی خرابې کپړې واچولې اوخپل خان ئې بدحال جوړکړو.دخناورو تولې اود بچو تولې ئې جدا جدا کړو. خپل خان سره ئې ترخناورو او بچوپورې بوتله اوترځلوبښتوورځو پورې ئې زارۍ او فریاداوکړو.الله ﷻ دهغوی د نیت خلوص او د توبې صداقت ته په کتو سره راغلې عذاب دهغوی نه اخواکړو.دیونس علیه السلام قوم دموصل دزمکې دنینواې اوسیدونکی وو([1]) ابن مسعود رضی الله عنه ﴿لولاکانت﴾ د ﴿هلاکانت﴾ سره لولي. غرض دا چه دا عذاب داسې د هغوی په سرونو ګرځیدو لکه په تیاره شپه کښې د اوریځو ټکړې . داخلق خپل یو عالم له لاړل چه مونږ ته یوه دعا اوليکه دکوم په برکت چه عذاب اخوا شي. هغه دا دعا اوليکله ﴿یاحی حین لاحی یامحی الموتی یاحی لااله الاانت﴾ نو عذاب اخوا شو. دا ټوله قصه په سورة الصفت کښې به ان شاء الله بیانیږی.

| وَلَوْ شَآءَ | رَبُّكَ | لَاٰمَنَ | مَنْ | فِي الْاَرْضِ | كُلُّهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوکه چرې غوښتلې | رب ستا | نو خامخا به ایمان راوړې وو | هغه چا | چې په زمکه کښې دی | ټولو |

اوکه ستا د پروردګار مرضی وې | نو دزمکې په مخ ټولو خلقو به ایمان راوړئی وې |

| جَمِيْعًا | اَفَاَنْتَ تُكْرِهُ | النَّاسَ | حَتّٰى | يَكُوْنُوْا | مُؤْمِنِيْنَ | وَمَا كَانَ | لِنَفْسٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| په جمع | آیانوته به مجبوره کړې | خلق | تردې چې | شي ټول خلق | مومنان | اونشته هیڅ اختیار | یونفس لره |

......ایا ته په خلقو زور کوې اچې هغوئ دې خواه مخواه ایمان راوړي او هیڅوک دانشی کولې چې

| اَنْ تُؤْمِنَ | اِلَّا | بِاِذْنِ اللّٰهِ | وَيَجْعَلُ | الرِّجْسَ | عَلَى الَّذِيْنَ | لَا يَعْقِلُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې ایمان راوړی | مګر | په اجازت دالله سره | اواچوی | پلیتی | په هغه کسانو | چې دعقل نه کارنه اخلی |

ایمان راوړی امګر دالله ﷻ په اذن سره او الله پلیتی په هغه چا ورغورځوی اچې دعقل نه کار نه اخلی

قوله تعالی:: وَلَوْ شَآءَ رَبُّكَ لَاٰمَنَ

**هدایت او ضلالت د الله ﷻ په اختیارکښې** :- الله ﷻ فرمائی چه اې محمد ﷺ که چرې الله ﷻ غوښتل نو ټول په ټولو به ایمان راوړې وو. خو الله ﷻ چه څه کوی په هغې کښې حکمت وی.که د الله ﷻ مرضی وه نو ټول به په یوخیال وو خود خلقو رائې مختلف دی. په صحیح رائې باندې هغه دی په چا چه الله ﷻ رحم اوکړی. اود هغوی فطرت ئې هم داسې جوړکړې دې. د الله ﷻ به دا خبره پوره کیږی چه زه به دوزخ د پیریانو اوانسانانو نه ډکوم. که ټول په ټول په هدایت وو نو دا ایمان به څه بې معنې غوندې څیز نه جوړیدو. الله ﷻ فرمائی چه ته دوی مجبورکوې اومؤمنان ئې جوړول غواړې نه دا په

[1]) الطبری: ۲۰۷/۱۵.

تاباندې واجب دی اونه ته د دې ذمه وار نې. الله ﷻ چه څوک غواړي ګمراه نې کړي او څوک چه غواړي نو هدايت ورته کړي ته په دوی باندې په افسوس باندې خپل زړه مه خفه کوه په دې خيال باندې چه هغوی ايمان نه راوړي، آيا ته خپل ځان هلاکوې. ته په خپل طاقت سره څوک په لار نه شې راوستې. ستاکارخو صرف تبليغ کول دی بيا هغوی سره کتل زمونږ کار دې. ته صرف ناصح نې او نصيحت کوه اوبوهه کونې. دې نه پس ته ذمه وار نه نې. دا آياتونه په دې خبره دلالت کوی چه الله ﷻ د خپلې ارادې فاعل دې. هيڅ څوک د الله ﷻ دمرضۍ نه بغيرايمان نه شي راوړې. د عقل نه کارنه اخستونکی ګمراه کولې شي. الله ﷻ په هدايت کولو او هدايت نه کولو کښې په عدل باندې دې.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قُلِ | انْظُرُوْا | مَاذَا | فِي السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ ط | وَمَا تُغْنِي | الْاٰيٰتُ |
| ورته اووايه | چې اوګورئ | هغه څه ته | چې په آسمانونوکښې دی | اوپه زمکه کښې دی | اونه ورکوی فائده | نښې |
| دوئ ته اووايه چې لږ اوګورئې په اسمانونو او په زمکه کښې څه څه څيزونه موجود دی (او د دنيا) تولې | | | | | | |
| وَالنُّذُرُ | عَنْ قَوْمٍ | لَّا يُؤْمِنُوْنَ ۝ | فَهَلْ يَنْتَظِرُوْنَ | اِلَّا | مِثْلَ اَيَّامِ | |
| او يرول | هغه قوم له | چې نه راوړی ايمان | نو آيا انتظار کوی دوئ | مګر | دمثال دبدو ورځو | |
| نښې هغې خلقو ته هيڅ فائده نه ورکوی (څوک چې ايمان راوړل نه غواړي) آيا اوس دوئ دهغه شان | | | | | | |
| الَّذِيْنَ | خَلَوْا | مِنْ قَبْلِهِمْ ط | قُلْ | فَانْتَظِرُوْا | اِنِّيْ | |
| هغو | چې تيرې شوی دی | مخکښې ددوئ نه | ورته اووايه | نو انتظار کوئ تاسو | بيشکه زه هم | |
| ورځو انتظار کوی (چې په پخوانو خلقو باندې راغلې وې) ورته اووايه چې ښه ده تاسو انتظار کوئ | | | | | | |
| مَعَكُمْ | مِّنَ الْمُنْتَظِرِيْنَ ۝ | ثُمَّ | نُنَجِّيْ | رُسُلَنَا | وَالَّذِيْنَ | |
| ستاسو سره | دانتظار کونکونه يم | بيا | بچ کوؤ مونږه | رسولان خپل | اوهغه کسان | |
| اوزه هم تاسو سره انتظار کوم (نو بيا به (دعذاب په وخت کښې) مونږ خپل پيغمبران او | | | | | | |
| اٰمَنُوْا | كَذٰلِكَ ۚ | حَقًّا | عَلَيْنَا | نُنْجِ | الْمُؤْمِنِيْنَ ۝ | |
| چې ايمان نې راوړې وی | زمونږ دا طريقه ده | حق دې | په مونږ باند | چې بچ کوؤمونږ | مومنان | |
| (نور) مومنان بچ کړو (هم دا زمونږ ذمه واری ده) چې مومنان بچ کوؤ | | | | | | |

قوله تعالىٰ: قُلِ انْظُرُوْا مَاذَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ط
د آسمان په غاړوکښې د قدرت نښې: الله ﷻ دخپلو بنديګانو رهنمائی فرمائی چه ټول کائنات کښې زمونږکومې نښې دی لکه آسمان، ستوری، سيارې، نمرسپوږمۍ، شپه ورځ خواره شوی دی. په دې باندې دبصيرت نظراچولوسره چه شپه په ورځ کښې اوورځ په شپه کښې څنګه داخليږي. کله ورځ لويه اوکله شپه لويه. دآسمان اوچتوالې اوخوروالې، په ستورو سره دهغې ښائست اودآسمان نه اوبه راورول، دزمکې داوچيدو نه پس بيا ژوندی کيدل او آباديدل، په ونوکښې ګلونه او ميوې اوغوټئ پيدا کيدل، مختلف بوټی راټوکيدل، د مختلف قسمونوځناور، د هغوی جدا جدا شکلونه اود هغې بيل بيل افاديتونه، غرونه کولاؤ ميدانونه، ځنګل، باغ، آبادئ، بيابانونه، د سمندر د بيخ عجائبات، موجونه، اوددې ښکته کيدل او اوچتيدل، سره د دې دسفرکونکوډپاره دسمندرمسخر کيدل، دجهازونو چليدل، دا ټول دقادرمطلق نښې دی. دکوم نه علاوه چه بل الله هډو شته نه. خو افسوس چه دا ټولې نښې د

کافرانو دغور اوفکر هيڅ سبب هم نه جوړيږي. د الله ﷻ دليل ثابت شوې دې. که ايمان نه راوړي نونه دې راوړي.

**منکرينو ته رټنه:** اوداخلق خو هم دغه د عذاب د ورځو انتظار کوي کوموسره چه وړاندينې قومونه مخ شوې وو. اې نبي ﷺ اووايه چه دوخت انتظار کوئ اوزه هم تاسوسره انتظارکوم. اوچه کله د انتظاريه ختميدوباندې عذاب راشي نوبيا به مونږخپل رسولان اود هغوی امتونه بچ کړو اود پيغمبرانو تکذيب کونکي به هلاك کړو. الله ﷻ په خپله ذمه واخسته چه مؤمنين به بچ کړو لکه څنګه چه نې رحمت په نيکوکارانوباندې په خپله ذمه اخستې دې. په بخاری او مسلم شريف کښې دې چه حضور ﷺ فرمائيلي دی د الله ﷻ کتاب کوم چه په لوح محفوظ چه په عرش باندې دې په هغې کښې ليکلې دې چه زما رحمت زما په غضب باندې غالب دې.(۱)

| قُلْ | يَٰٓأَيُّهَا | النَّاسُ | إِن كُنتُمْ | فِى شَكٍّ | مِّن دِينِى | فَلَآ أَعْبُدُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اووايه | اے نبی | اے خلقو | که يئ تاسو | په شك کښې | په باره د دين زما کښې | نو نهٔ کوم زهٔ بندګي |
| اې پيغمبره اووايه چې اې خلقو که ستاسو (اوس هم) څما د دين باره کښې څه شک کښې يې انو زه | | | | | | |

| الَّذِينَ | تَعْبُدُونَ | مِن دُونِ اللَّهِ | وَلَٰكِنْ | أَعْبُدُ اللَّهَ | الَّذِى | يَتَوَفَّىٰكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دهغو | چې تاسوئې بندګي کوئ | ماسوادالله نه | بلکه | زهٔ بندګي کوم دالله | هغه | چې وفات کوی تاسو |
| دهغې معبودانو عبادت نه کوم چې تاسو ئې دالله ﷻ نه بغير عبادت کوئی بلکه زه خو دهغې الله ﷻ | | | | | | |

| وَأُمِرْتُ | أَنْ أَكُونَ | مِنَ الْمُؤْمِنِينَ | وَأَنْ | أَقِمْ | وَجْهَكَ | لِلدِّينِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوحکم شوې دې ماته | چې شم زهٔ | دمومنانو نه | او چې | ودروه | مخ خپل | دپاره د دين |
| عبادت کوم چې ستاسو ژوند اومرګ دهغه په قبضه کښې دې اوماته حکم دې چې په مومنانو کښې دې شامل | | | | | | |

| حَنِيفًا | وَلَا تَكُونَنَّ | مِنَ الْمُشْرِكِينَ | وَلَا تَدْعُ | مِن دُونِ اللَّهِ | مَا |
|---|---|---|---|---|---|
| يو مخيزې | اوهرګز مهٔ کيږه تهٔ | دمشرکانو نه | او مهٔ رابله | ماسوا دالله نه | هغه |
| يم (اوماته) داحکم دې چې خپل ځان دين طرفته يو مخيز کړم اوپه مشرکانو کښې نه ورګډيږم او دالله | | | | | |

| لَا يَنفَعُكَ | وَلَا يَضُرُّكَ | فَإِن | فَعَلْتَ | فَإِنَّكَ |
|---|---|---|---|---|
| چې نهٔ شي دررسولې فائده تاته | اونه ضرر تاته | نو که چرې | اوکړو تا داکار | نو بيشکه تهٔ به نې |
| نه بغير د چا نه دعا مهٔ غواړه | چې نفع نشي ورکولې | او نه ضرر ورکولې شی | که داسې دې اوکړل | |

| إِذًا | مِّنَ الظَّٰلِمِينَ | وَإِن يَمْسَسْكَ | اللَّهُ | بِضُرٍّ | فَلَا كَاشِفَ |
|---|---|---|---|---|---|
| په هغه وخت کښې | د ظالمانو نه | اوکه اورسوی تاته | الله | يوضرر | نونشته لرې کونکې |
| نو په ظالمانو کښې به شمير شې اوکه الله درته تکليف اورسوی انو دهغه نه بغيربل څوک ئې نشی لرې کولې | | | | | |

(۱) صحيح بخاری کتاب التوحيد باب قول الله تعالی ﴿ويحذركم الله نفسه﴾: ۷۴۰۴، صحيح مسلم: ۲۷۵۱.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لَهٗٓ | اِلَّا | هُوَ | وَاِنْ يُّرِدْكَ | بِخَيْرٍ | فَلَا رَآدَّ | لِفَضْلِهٖ |
| هغه لره | مګر | هم هغه | اوکه اراده اوکړه تاته | دخير | نو نشته څوك واپس کونکي | فضل دهغه لره |
| اوکه هغه درته خير رسول اوغواړي \| نو دهغه فضل هيڅوک رد کولې نشی \| د هغه چي په کومو | | | | | | |
| يُصِيْبُ | بِهٖ | مَنْ يَّشَآءُ | مِنْ عِبَادِهٖ | وَهُوَ | الْغَفُوْرُ | |
| رسوی هغه | داخير | هغه چاته چي خوښه ئې شی | دبندګانو خپلو نه | اوهغه | ښښونکې دې | |
| باندې مرضی اوشیانو فضل پرې کوی \| اوهغه بخښونکې رحم کوونکې دې | | | | | | |
| الرَّحِيْمُ۞ | | | | | | |
| رحم کونکې دې | | | | | | |

قوله تعالی:: فَلَآ اَعْبُدُ الَّذِيْنَ تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ

**د دين حنيف وضاحت:-** الله ﷻ خپل خوږ نبی ﷺ ته فرمانی اې نبی ﷺ! واوروه چه ما کوم دين حنيف راوړلې دې اودکوم وحی چه په ما نازل شوې ده که د دې په صحيحوالی کښې ستاسو څه شك وی نوزه خو به ستاسو دمعبودانوهيڅ کله هم عبادت اونه کړم. زه د الله ﷻ چه واحد لاشريك دې د هغه بنده يم، چه تاسوبه مړه کوی اوژوندئې ورکړې وو.يقيناً تاسوټول به دهغه طرفته ځئ.فرض کړئې چه په حقيقت کښې ستاسو معبودان حق دی نو هغوی ته اووائې چه ماته نقصان راورسوی. ياد ساتئې چه په دوی کښې دنفع نقصان رسولو هيڅ قدرت نشته.نفع او نقصان خوصرف د الله واحد لاشريك په قدرت کښې دی. اې نبی ﷺ! دکفارونه اعراض کولوسره په پوره اخلاص سره د الله ﷻ عبادت کوه. دشرك طرف ته لړ شان هم مه ټيټيږه.که په مضرت او نقصان کښې الله ﷻ تا راګيرکړی نو څوك ددې راګيرولونه تا بهر راويستې شی. نفع ضرر، خيروشر خود الله ﷻ طرف ته راجع دې.

**هروخت دالله ﷻ رحمت غوښتل پکاردی::** دانس بن مالك ﷺ نه روايت دې چه حضور ﷺ فرمانيلی دی ټول عمردخير غوښتونکې اوسيږه اود الله ﷻ نعمتونه مخې ته وراندې کوه.د الله ﷻ د رحمتونو هواګانې چه کوم خوش نصيب ته اورسی نواورسی. هغه چه څوك غواړی په رحمت سره ئې سرفرازکړی اود الله ﷻ نه غوښتنه کوه چه ستا عيبونه پټوی (١) او تا د زمانې د آفتونونه اود نفس د آفتونونه په امن کښې اوساتی هغه غفور الرحيم دې که هرڅنګه ګناه ولې نه وی توبه کوه تردې چه شرك کولو سره هم توبه اوکړه هغه ئې قبلوی.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قُلْ | يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ | قَدْ جَآءَكُمُ | الْحَقُّ | مِنْ رَّبِّكُمْ |
| اورته اووايه | اے خلقو | په تحقيق سره راغلې دې تاسوته | حق | دطرفه درب ستاسونه |
| اووايه \| اې خلقو تاسوته د خپل پروردګار نه حق رارسيدلې دې | | | | |
| فَمَنِ | اهْتَدٰى | فَاِنَّمَا | يَهْتَدِيْ | لِنَفْسِهٖ ‌‌‌‌ | وَمَنْ |
| نوهغه څوك | چي نيغه لاره ئې اونيوه | نوبيشکه | هغه نيغه لاره نيسی | دپاره دخان خپل | اوهغه څوك |
| نو څوك چي په سمه لار روان شو \| نو هغه دخپلې فائدې دپاره روان شو \| او څوك چي | | | | | |

(١) شعب الايمان: ١١٢١، المعجم الکبير: ٧٢٠.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ضَلَّ | فَاِنَّمَا | يَضِلُّ | عَلَيْهَا ۚ | وَمَآ اَنَا | عَلَيْكُمْ |
| چې گمراهه پاتې شو | نو بیشکه | هغه گمراهه کیږي | په خان خپل | اونه یم زه | په تاسو باندې |
| گمراه شو | نو وبال ئې په خپل ځان شو | اوزه ستاسو څه ذمه وار نه یم | او په هغې وحې | | |
| بِوَكِيلٍ ۞ | وَاتَّبِعْ | مَا | يُوحَىٰٓ | اِلَيْكَ | وَاصْبِرْ حَتّٰى |
| ساتونکې | اوپیروي کوه ته | دهغې هدایت | چې درلیږلې کیږي | تاته | اوصبر کوه ترهغې پورې |
| عمل کوه | کومه چې تاته راځي | او صبر کوه | تر دې چې الله ﷻ فیصله اوکړي | اوهغه ډیر ښه | |
| يَحْكُمَ | اللّٰهُ ۚ | وَهُوَ | خَيْرُ الْحٰكِمِيْنَ ۞ | | |
| چې فیصله اوکړي | الله | اوهغه | بهتره فیصله کونکې دې | | |
| فیصله کوونکې دې | | | | | |

**قوله تعالی:: وَمَنْ ضَلَّ فَاِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيْهَا**

**نافرمان هم خپل نقصان کوي:**- الله ﷻ نبي ﷺ ته فرمائي چه خلقوته اووایه چه د الله ﷻ د طرف نه چه کومه وحی راغلې ده هغه حق ده په هغې کښې یوه ذره هم شك نشته.چا چه اومنله اوهدایت ئې بیاموندو د دې فائده به هغوی ته رسي اوچه څوك هدایت حاصل نه کړي د هغې وبال هم د هغه په خپل خان باندې دې. زه څه دالله ﷻ فوجدار نه یم چه په زور باندې تاسو مؤمنان جوړکړم. زه خودالله ﷻ د عذاب نه صرف ویرونکې یم اوهدایت ورکول دالله ﷻ کاردې. اې نبي ﷺ! ته د خپلې وحی پیروی کوه او د الله ﷻ وحی په مضبوطیاسره اونیسه او څوك چه ستا مخالفت کوي په هغې باندې صبر اوکړه.ترهغه وخته پورې چه د الله ﷻ دفیصلې حکم راشي. هغه خیرالحاکمین دې.حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه د رسول الله ﷺ نه سوال اوکړو چه ته څه ځیز بوډا کړې. حضور ﷺ اوفرمائیل سورة هود، سورة واقعه او عم يتساءلون او اذاالشمس کورت[1] بل روایت کښې دی سورة هود اودې سره سورتونه او حاقه.[2]

## ﴿تفسیر سورة هود﴾

| اياتونه | سورة هود مكية وهي مائة وثلاث وعشرون اية وعشر ركوعا | رکوعګانې |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۱۲۳ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | ۱۰ |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الٓرٰ | كِتٰبٌ | اُحْكِمَتْ | اٰيٰتُهٗ | ثُمَّ | فُصِّلَتْ |
| ا ل ر | دا کتاب دې | چې محکم کړې شوې دی | آیاتونه ددې | بیا | په تفصیل سره بیان شوی دی |
| الف لام میم را | ادا یو (داسې) کتاب دې | چې آیتونه ئې مضبوط دی | اوبیا دا چې وضاحت سره بیان شوی دی | | |
| مِنْ لَّدُنْ | حَكِيْمٍ | خَبِيْرٍ ۞ | اَلَّا تَعْبُدُوْٓا | اِلَّا اللّٰهَ ۭ | اِنَّنِيْ لَكُمْ |
| د طرفه | د یو حکیم | خبردارنه | چې تاسو بندګي مه کوئ | مګر دالله | بیشکه زه د پاره ستاسو |
| د یو حکیم خبردار د طرفنه | چې بغیر دالله ﷻ نه دبل هیچا عبادت مه کوئ | زه دهغه | | | |

[1] ترمذی کتاب تفسیر القرآن باب ومن سورة الواقعه:۳۲۹۷وهوصحیح، مسندالبزار:۱/۱۷۰، حاکم:۲/۳۴۴.
[2] مجمع الزوائد:۷/۳۷.

مِّنْهُ نَذِيْرٌ وَّبَشِيْرٌ ۝ وَّاَنِ اسْتَغْفِرُوْا رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوْبُوْٓا
د طرفه دهغه نه | برونکي | اوزیري ورکونکي یم | او دا چې معافي اوغواړئ | د رب خپل نه | بیا | توبه اوباسئ
د طرفنه ستاسو ویرونکې اوتاسو ته زیرې درکوونکې یم او (په دې مضمون) چې د خپل رب نه بخښنه

اِلَيْهِ يُمَتِّعْكُمْ مَّتَاعًا حَسَنًا اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى وَّيُؤْتِ كُلَّ
هغه ته | دربه کړي تاسو ته | سامان دژوند | ښه | دنیتې مقررې پورې | اووربه کړي | هر
غواړئ ابیا هغه ته رجوع اوساتئ | هغه به درته د ژوند سازوسان تر یو مقرر وخت پورې درکوي

ذِيْ فَضْلٍ فَضْلَهٗ ۭ وَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنِّىْٓ اَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ
خاوند دفضل ته | فضل دهغه | اوکه مخ واړوئ تاسو | نو بیشکه زه | یریږم | په تاسو باندې | دعذابه
او هر زیات کارکوونکی ته به دهغه زیات اجر ورکوي | اوکه مخونه مو واړول | نو زه په تاسو باندې

يَوْمٍ كَبِيْرٍ ۝ اِلَى اللّٰهِ مَرْجِعُكُمْ ۚ وَهُوَ عَلٰي كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝
دورځې | لوئې نه | خاص الله ته ده | واپسي ستاسو | اوهغه | په هر څیز باند | قادر دی
دیرې لوئې (هولناکې) ورځې د عذاب نه ویریږم | د ټولو واپسي الله ته ده | اوهغه په هر څۀ پوره پوره

**قوله تعالى:: وَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنِّىْٓ اَخَافُ عَلَيْكُمْ**

**دتوحیدنه اعراض کونکی په خساره کښې دی:** سورة بقره کښې په هجی حروفوباندې بحث تیرشوې دې دهغې دسردوباره کولودلته ضرورت نشته. په دې وجه په ﴿الٓرٰ﴾ باندې رڼا نه شي اچولې. دالله ﷻ آیاتونه محکم دی. ﴿فُصِّلَتْ﴾ معنی ده سورة معنی دا آیاتونه کامل دی. دا د الله حکیم او خبیر د طرف نه نازل شوې دې، هغه په اقوالوکښې حکیم دې او په نتائج اموركښې خبیردې. حکم ورکولې شی چه د الله ﷻ نه سوا د بل چا عبادت مه کونې. دې نه وړاندې هم چه مونږ د کوم رسول طرف ته وحی لیګلې نو هم دا چه زه یوازې الله یم هم زما عبادت کونې. مونږ په هریوقوم کښې پیغمبرلیګلې دې چه عبادت هم د یو الله کونې اود بتانود عبادت نه بچ شئ. زه تاسوهم د دوزخ نه ویروم اود جنت زیرې هم درکوم.

**درسول کریم ﷺ قریشو ته دتوحید اعلان::** په صحیح حدیث کښې دی چه رسول الله ﷺ په صفا غونډئ باندې اوختلو اود قریشو قبیلوته ئی آواز ورکړو په لږ ساعت کښې ټول یوبل پسې راجمع شو. ای قریشوکه زه تاسوته خبر درکړم چه د سحر کیدوسره به دښمن په تاسو د حملې کولودپاره رارسیدونکې دې نوزماخبره به تاسواومنئ که نه؟ ټولو په یوآوازاووئیل چه زمونږ خودا تجربه هم نه ده شوې چه تاسو په څه خبرد کښې دروغ وئیلی وی. نو حضور ﷺ اوفرمائیل واورئ! زه تاسو د الله ﷻ د سخت عذاب نه خبروم [1] چه هغه ستاسو راګیرونکې دی اواوس هم د الله ﷻ نه معافي اوغواړئ اوتوبه اوکړئ نو الله ﷻ به تاسو سره ښه سلوك اوکړی او هریود فضل خاوند ته به دخپل فضل نه برخه ورکړی. هغه به په دنیا کښې تاسو سره ښه سلوك اوکړی اوپه آخرت کښې هم خویدې شرط چه کوم ښخه اوسرې چه ایمان راوړی. مونږ به هغه د مرګ نه پس په حیات طیبه سره راپاسوو.

**دیونیکئ بدله به په لسه وی او دبدئی دادهغه پشان وی ::** رسول الله ﷺ حضرت سعد رضی الله عنه ته اووئیل که ته په چا باندې څه خرچ اوکړې اوستا نیت خالص دالله ﷻ رضاوی نو یقیناً ددې اجربه بیامومې. تردې

[1] صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الشعراء باب ﴿وانذر عشیرتك الاقربین...﴾: ۴۷۷۰، صحیح مسلم: ۲۰۷

چه په خپله ښځه باندې خوراك كوي نو په دې به هم درته اجر ملاويږي(۱) چا چه خراب عمل اوکړو هغې پسې يوه گناه اوليکلې شوه اوچاچه يوه نيکې اوکړه هغه پسې لس نيکۍ اوليکلې شوې.كه په دنيا كښې د بد عمل هغه ته سزا ورکړې شوې وى نودهغې په بدله كښې د هغه لس نيکئى پاتې كيږي اوكه په دنياكښې هغه ته سزا نه وى وركړې شوې نو د هغه د لسونيکونه يوه نيکې سوزى. اود هغه د دې په حق كښې نهه نيکۍ باقي پاتې كيږي.بيا فرمائي چه هغه سړې ډير په تاوان كښې پاتې شودچا اكانياني (يعني يو يو) د هغه په هره عشره باندې غالب راځي.(يعني د يوې نيکئى په بدل لس دى اود يوې بدئى په بدله كښې يوه گناه ده نواوس دا يوه گناه په لسونيكوباندې غالب كيدل مراددى) كه تاسو مخ اړونى نوزما په تاسو باندې د قيامت د ورځې د عذاب ويره ده. دا د هغه سړى دپاره چه د الله ﷻ د او امرونه مخ اړوى، اودرسولانوتكذيب كوى. نويقينادقيامت په ورځ به عذاب سره مخ كيږي. ستاسو واپسى د الله ﷻ طرف ته ده.هغه خپلو اولياؤ باندې احسان كولو او خپلو دښمنانو ته په سزا وركولو باندې قادردې.اودخلقو په اعاده باندې قادردې.دا يوه زبردسته تنبيه ده لكه څنګه چه د دې نه وړاندې ترغيب وركړې شوې وو.

| اَلَآ | اِنَّهُمْ | يَثْنُوْنَ | صُدُوْرَهُمْ | لِيَسْتَخْفُوْا | مِنْهُ ؕ | اَلَا | حِيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| واورئ | بيشكه دا خلق | تاووى | سينې خپلې | دپاره ددې چې پټ شي | دهغه نه | خبردار | څه وخت |
| قدرت لرى \| واوره دوئ خپلې سينې تاوهى چې دالله ﷻ نه پټ شي \| اواوره چې دوئ څهٔ وخت په خان جامې | | | | | | | |

| يَسْتَغْشُوْنَ | ثِيَابَهُمْ | يَعْلَمُ | مَا | يُسِرُّوْنَ | وَمَا | يُعْلِنُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې دوئ اغوندى | په كپړوخپلو | پيژنى الله | هغه | چې پټوى ئې دوئ | اوهغه | چې ښكاره كوى ئې دوئ |
| راواچوى \| نو الله ﷻ ته هغه هر څه معلوم دى \| كوم چې دوئ پټوى \| اوكوم چې ښكاره كوى \| هغه | | | | | | |

| اِنَّهٗ | عَلِيْمٌ | بِذَاتِ | الصُّدُوْرِ ۝ |
|---|---|---|---|
| بيشكه هغه | ښه خبر دې | په پټو رازونو | دسينو باندې |
| دزړونو د رازونو نه هم ښه خبر دې | | | |

قوله تعالى:: اَلَآ اِنَّهُمْ يَثْنُوْنَ صُدُوْرَهُمْ

**په شرم اوحياكښې دغلوممانعت.**-دابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې چه خلق به دكولاؤ آسمان نه د متيازو وغيره كولونه اودصحبت كولونه بچ كيدل. نوالله ﷻ دا آيت نازل كړو.ابن عباس رضي الله عنه ﴿يَثْنُوْنَ﴾ په ﴿تثنونى﴾سره لوستلې دې نوابن جعفر رحمه الله اووئيل ﴿تثنونى صدورهم﴾ څه مطلب دې؟ نو هغه اووئيل چه هغه سړې چه صحبت كوى او شرميږى يا په خلوت كښې هم هغه شرميږى، نو دا آيت نازل شو. ابن عباس رضي الله عنه وائى چه خلقو به د كولاؤ آسمان لاندې خلوت كولواوصحبت كولوكښې شرم كولو(۲) اوخپل مخ به نى اړولو.خاص كرپه هغه وخت چه دشپې به سملاستواو بستره به ني اغوستله، او خپل سريه نى پټولو.دهغوى خيال دا وو كه مونږ په كور كښې اوسيږو اوياكپړا واغوندو او يوغلط كاركوو نود الله

۱) صحيح بخارى كتاب الوصايا باب ان يترك ورثته اغنياء خير من ان يتكففوالناس :۲۷٤۲، صحيح مسلم: ۱٦۲۸.
۲) صحيح بخارى كتاب التفسير سورة هود باب ﴿الاانهم يثنون صدورهم ليستخفوامنه....﴾:٤٦٨۱-٤٦٨۲.

ﷻ نه خپل گناهونه پټولې شو.الله ﷻ خبر ورکوی چه هغوی د شپې په تیاره کښې د اوده کیدو په وخت هغوی کپړا اغوندی خو که څه پټوی اوکه ښکاره کوی الله ﷻ په هرڅه خبر دې. تردې چه د انسان د زړه نیت اود ضمیراراده او رازونه هم پیژنی.د سبعه معلقات مشهور شاعر زهیر وائی:

| | |
|---|---|
| فلاتکتمن الله مافی قلوبکم | ومهما یکتم الله یعلمیو |
| لیخفی یؤخر فیوضع فی کتاب فیدعر | لیوم الحساب اویعجل فینقم |

ناسو دخپل زړونوپټې خبرې د الله ﷻ نه د پټولو کوشش مه کوې الله ﷻ ته خامخا پته ده. هغه عمل به جمع وی اود قیامت په ورځ به په عمل نامه کښې محفوظ وی گنی که زرسزا ورکړې شوه نوهم په دنیا کښې به سزا ورکړې شی.د جاهلیت د زمانې دې شاعر هم د صانع د وجود اعتراف کړې دې او دې هم د هغه جزئیات نه خبر دې چه معاد دې جزا ده اوعمل نامه ده. دقیامت ورځ ده.عبدالله بن شداد فرمائی چې په صحابه کرامو کښې به څوك د نبی کریم ﷺ خوا کې تیریدو نو دغه وخت کښې به خپل مخ واړولو او سر نې پټ کړو نو الله ﷻ دا آیت نازل کړو. خو دا خبره د الله ﷻ طرف ته منسوب کول زیات اولی دی. یعنی د دې نه مراد دا دې چه د الله ﷻ نه پټیدل غواړی خکه چه د دې نه پس راخی﴿اَلَا حِيْنَ يَسْتَغْشُوْنَ ثِيَابَهُمْ﴾ ابن عباس ﴿الاانهم تثنونی صدورهم﴾ لوستلې دې. د دې معنی نیزدې نیزدې هم دغه ده.

﴿الحمدلله﴾

د الله ﷻ په فضل سره

یولسمه سپاره ختمه شوه.

| وَمَا | مِنْ دَآبَّةٍ | فِي الْأَرْضِ | إِلَّا | عَلَى اللهِ | رِزْقُهَا | وَيَعْلَمُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اونشته | هيڅ يو ساه لرونكي | په زمكه كښې | مګر | په الله باندې دې | رزق د هغې | او پيژني الله |

اود زمكې په مخ چه هر ژوندې دې نو خواه مخواه دهغه روزي دالله ﷻ په ذمه ده | اوهغه ته دهر يو

| مُسْتَقَرَّهَا | وَمُسْتَوْدَعَهَا | كُلٌّ | فِي كِتٰبٍ | مُّبِيْنٍ۝ |
|---|---|---|---|---|
| خانې د اوسيدو د هغې | او خانې دسپارنې دهغې | هرڅه | په كتاب | روښانه كښې موجود دى |

كس د زياتې او د لږې استوګنې خانې معلوم دې | دا هر څه په ښكاره كتاب كښې ليک دى

**قوله تعالى:: وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ فِي الْأَرْضِ**

**الله ﷻ دټولو مخلوقات كفيل اوذمه وار دې:-** الله ﷻ دټولو مخلوقاتوكه واړه دى كه لوئ يا په اوچه دى او كه په لمده دهغه ټولود رزق ذمه ورادې. هم هغه ددوى د ګرځيدوراګرځيدو،تلوراتلو،اوسيدو، د مرګ خائ اوپه رحم كښې د پاتې كيدو خائ پيژنى.ابن ابى حاتم رحمه الله پدې خائ كښې دمفسرينود اقوالو ذكر كړې دې.والله اعلم داټولې خبرې قصه پدې كتاب كښې كوم چه الله ﷻ سره محفوظ ليكلې شوې دې.
او هم هغه كتاب د هغې تفصيل بيانوى لكه چه الله ﷻ فرمانيلى دى﴿ وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ فِي الْأَرْضِ وَلَا طٰٓئِرٍ يَّطِيْرُ بِجَنَاحَيْهِ إِلَّآ أُمَمٌ أَمْثَالُكُمْ ۚ مَا فَرَّطْنَا فِي الْكِتٰبِ مِنْ شَيْءٍ ثُمَّ إِلٰى رَبِّهِمْ يُحْشَرُوْنَ۝﴾يعنى په مخ دزمكې تلونكى ځناور او مرغئ چه په خپلو وزرو باندې الوزى ټول په ټول هم ستاسو په شان امتونه دى مونږ په كتاب كښې هيڅ څيز د ليكلونه نه دې پريخې.
دا ټول په ټول به خپل رب سره راجمع كيږي. او الله ﷻ فرمانيلى دى﴿وَعِنْدَهٗ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَآ إِلَّا هُوَ ۚ وَيَعْلَمُ مَا فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ ۚ وَمَا تَسْقُطُ مِنْ وَّرَقَةٍ إِلَّا يَعْلَمُهَا وَلَا حَبَّةٍ فِي ظُلُمٰتِ الْأَرْضِ وَلَا رَطْبٍ وَّلَا يَابِسٍ إِلَّا فِي كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ۝﴾يعنى د غيب كنجيانې هم هغه سره دى اوهغه دالله پاك نه علاوه هيڅ څوك نه پيژنى.كوم چه په درياب او يا په ځنګل كښې دى هغه هم الله پيژنى.اوكومه پاڼره چه راپريوځى هغه دهغه په علم كښې ده. دزمكې په تيارو كښې يوه دانه او په اوچه اولمده كښې يو څيز هم داسې نه دې چه د هغه په علم كښې نه وى.

| وَهُوَ الَّذِيْ | خَلَقَ السَّمٰوٰتِ | وَالْأَرْضَ | فِيْ سِتَّةِ | أَيَّامٍ | وَّكَانَ عَرْشُهٗ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوهغه هغه ذات دې | چې پيدا ئې كړل | اسمانونه | او زمكه | په شپږو ورځو كښې | او وو | عرش د هغه |

او الله ﷻ هغه ذات دې چې اسمانونه او زمكه ئې په شپږو ورځو كښې پيدا كړل او د هغه عرش

| عَلَى الْمَآءِ | لِيَبْلُوَكُمْ | أَيُّكُمْ | أَحْسَنُ | عَمَلًا |
|---|---|---|---|---|
| په اوبو باندې | دپاره ددې چې امتحان اوكړى ستاسواچې كوم يوپه تاسوكښې ډير ښهٔ دې | | په اعتبار د عمل سره | |

په اوبو ولاړ ووا چې ستاسو ازميښت اوكړى چې څوک در كښې د عمل په لحاظ سره ډير ښهٔ دې

| وَلَئِنْ | قُلْتَ | إِنَّكُمْ | مَّبْعُوْثُوْنَ | مِنْ بَعْدِ الْمَوْتِ | لَيَقُوْلَنَّ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوكه چرته | اووائې ته | چې بيشكه تاسوبه | دوباره راپاسولې شئ | روستودمرګ نه | نوخامخا وائې به |

او (ائې پيغمبره ﷺ) كه تهٔ ورته اووائې چې تاسو به دمرګ نه پس بيا راژوندى كيږئ نو كافر به ضرور

| الَّذِيْنَ | كَفَرُوْٓا | إِنْ هٰذَآ | إِلَّا | سِحْرٌ | مُّبِيْنٌ۝ | وَلَئِنْ | أَخَّرْنَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هغه كسان | چې كافران دى | چې نه دې دا | مګر | جادو | ښكاره دې | اوكه چرې | روستوكړو مونږه |

اووائې چې دا خو ښكاره جادو دې | اوكه مونږ ددوئ نه تر يو نيټې پورې عذاب روستو كړو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَنْهُمُ | الْعَذَابَ | إِلَىٰ أُمَّةٍ | مَّعْدُودَةٍ | لَّيَقُولُنَّ | مَا يَحْبِسُهُ ط |
| دهغوئ نه | عذاب | دېرې مودې | شمارلې شوې پورې | نوخامخا وائي به | چي څه شيز بندوي هغه عذاب |

نو دوئ وائي چي اخر څه شيز دا (عذاب) منع کړو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَلَا | يَوْمَ | يَأْتِيهِمْ | لَيْسَ مَصْرُوفًا | عَنْهُمْ |
| خبردار | په کومه ورځ | چي راشي هغه دوئ ته | نونه به شي لرې کولي هغه | ددوئ نه |

واوره ......چي په کومه ورځ (عذاب) راشي ...........نو بيا به ترې نه اړولې نشي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَحَاقَ | بِهِمْ | مَّا | كَانُوا | بِهِ | يَسْتَهْزِءُونَ ۸ |
| اوچاپيره به شي | ددوئ نه | هغه څيز | چي وو دوئ | په هغي پورې | چي توقي به ئې کولې |

اودوی به په هغه عذاب کښې راګير شي په کوم پورې چي به دوئ توقې کولې

**قوله تعالى: وَهُوَ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ**

**دالله ﷻ دبعضې نښو او دعرش بيان:-** الله ﷻ بيان فرمائي چه د هغه په هرڅيز باندې قدرت دې. آسمان اوزمکه الله ﷻ صرف په شپږوورځوکښې پيداکړې دی.دې نه وړاندې د الله ﷻ عرش عظيم په اوبو باندې وو.په مسند احمدکښې دی چه رسول الله ﷺ فرمانيلي اې بنوتميم تاسو زيرې قبول کړئ، هغوی اووئيل چه زيری خو تاسوراته واوروړل اوس څه راکړه.

**د اسمان او زمکې نه مخکښې د الله ﷻ عرش په اوبو وو:**:حضور ﷺ اوفرمائيل چه اې اهل يمن تاسو ئې قبول کړئ.هغوی اووئيل چه او مونږ قبول کړلود مخلوق شروع خو مونږ ته اوښايه چه څنګه شوې؟ حضور ﷺ اوفرمائيل اول الله تعالى وود هغه عرش په اوبوباندې وو.الله ﷻ په لوح محفوظ کښې د هر څيزتذکره اوليکله.دحديث راوی حضرت عمران ؓ وائي چه حضور ﷺ هم دومره فرمانيلي ووچه څوک راغلو اوماته ئې خبر راکړوچه ستا اوښې پړې شلولې اواوتختيده. زه دهغې په لټون کښې لاړم بيا ماته معلومه نه ده چه څه خبره اوشوه؟ دا حديث په بخاری اومسلم کښې هم دې. په يو روايت کښې دې الله ﷻ وو اوهغې وړاندې بل هيڅ نه وو.په يو روايت کښې دي چه هغه سره هيڅ نه وو دهغه عرش په اوبو باندې وو هغه د هرڅيز تذکره ليکلې ده بيائې زمکه او آسمان پيداکړو([1]) دمسلم شريف حديث کښې دې دزمکې اوآسمان پيدا کيدونه پنځوس زره کاله مخکې الله ﷻ دمخلوقاتوتقديرونه اوليکل اود هغه عرش په اوبوباندې وو([2]) په صحيح بخاری شريف کښې د دې آيت د تفسيرپه موقع يو حديث قدسی راوړې دې. چه اې انسانه ته زما په لار کښې خرچ کوه زه به تاله درکړم. د شپې ورځې خرچ د الله ﷻ په کښې لاس دې اوپه هغې کښې هيڅ کمې زياتې نه راځي.خيال خو اوکړه چه د زمکې اوآسمان پيدا کولونه به تراوسه پورې څومره خرچ شوې وی خو چه دهغه په ښی لاس کښې څه وو هغه نه کميږی. د هغه عرش په اوبوباندې دې اودهغه په لاس د قدرت کښې ميزان دې ښکته کوی اواوچتوی. ([3]) مسند کښې دی ابورزين لقيط بن عامر بن منفق عقيلي ؓ دحضور ﷺ نه سوال اوکړو چه د مخلوق د پيدا کولونه وړاندې زمونږ پروردګار چرته وو؟ حضور ﷺ اوفرمائيل په عماء کښې لاندې هم هوا وه اوپورته

---

[1] صحيح بخاری کتاب بدء الخلق باب ماجاء فی قول الله تعالى ﴿وهوالذی يبدؤالخلق ثم يعيده وهواهون عليه.....﴾:۳۱۹۱، ۱٤۱۸، احمد: ٤/٤۳۱، ابن حبان :٦١٤٢.

[2] صحيح مسلم كتاب القدر باب حجاج آدم وموسى صلى الله عليهما:٢٦٥٣،مسنداحمد:١٦٩/٢، ابن حبان:٦١٣٨.

[3] صحيح مسلم كتاب التفسير سورة هود باب قوله ﴿وكان عرشه على الماء﴾:٤٦٨٤، صحيح مسلم: ٩٩٣، مسند حميدى:١٠٦٨.

هم هوا وه بیاني د هغې نه روستو عرش پیداکړو.دا روایت په ترمذی شریف کتاب التفسیر کښې هم شته اوپه سنن ابن ماجه کښې هم شته[۱] امام ترمذی رحمه الله دې ته حسن وائي. مجاهد رحمه الله وائي چه د څه څيز پیداکولو نه وړاندې د هغه عرش په اوبوباندې وو. وهب، ضمره قتاده ابن جرير رحمهم الله وغیره هم دا وئیلي دي.قتاده رحمه الله وائي چه الله ﷻ خودلی دی چه د آسمان او زمکې پیداکیدو نه وړاندې د مخلوق شروع څنګه اوشوه.ربیع ابن انس رحمه الله وائي چه دهغه عرش په اوبوباندې ووکله چه زمکه او آسمان پیداکړونو دهغه اوبونې دوه حصې کړې نیمې دعرش د لاندې اوهم دغه بحر مسجور دې. د ابن عباس ﷺ قول دې چه په وجه د اوچتوالي عرش ته عرش وائي.سعد طائي رحمه الله وائي چه عرش د سرو یاقوتو دې.محمد بن اسحاق رحمه الله وائي چه الله ﷻ هم داسې وو لکه څنګه چه هغه د خپل نفس کریم وصف اوکړوځکه چه هيڅ نه وو اوبه وې پدې باندې عرش وواوپه عرش باندې ﴿ذوالجلال والاکرام ذوالعزت والسلطان ذوالملك والقدرة ذوالعلم والرحمة والنعمة﴾وو چه څه غواړي نوکوي. د ابن عباس ﷺ نه ددې آیت باره کښې سوال اوشو چه اوبه په څه څيز باندې وې.هغوی اوفرمائیل د هوا په شاباندې.[۲]

**دانسان دپیداکولومقصددخالق عبادت کول دي:**-بیا فرمائي چه دآسمان اوزمکې پیداکول ستاسود فائدې د اره دی اوتاسو د دې د پاره نې چه د دغه یوخالق عبادت اوکړئی، هغه سره څوك شریك جوړنه کړئی.یاد ساتئ تاسو بیکاره نه نی پیداکړې شوی. آسمان اوزمکې اود دې په مینځ کښې څيزونه باطل نه دی پیداکړې شوي. دا ګمان د کافرانو دې اودکافرانودپاره خود دوزخ عذاب دې[۳]او په آیت مبارك کښې دی ﴿أَفَحَسِبْتُمْ أَنَّمَا خَلَقْنَاكُمْ عَبَثًا﴾ آیا تاسو دا ګنړئی چه مونږ تاسو عبث پیداکړی نې اوتاسو به زمونږ طرف ته نه شئی راواپس کولې؟ الله چه رښتوني مالك دې هم هغه حق دی د هغه نه علاوه بل څوك معبود نشته هغه د عرش کریم رب دې. او په آیت کښې دی چه انسانان او پیریان ما صرف د خپل عبادت د پاره پیداکړی[۴]هغه په تاسو ازمیښت کوی چه په تاسو کښې دنیك عمل والا څوك دی. دانې نه دی فرمائیلی چه د ډیر عمل والا څوك دې؟ځکه حسن عمل هغه وی په کوم کښې چه خلوص وی اود شریعت محمدی ﷺ تابعدارې وی. که په دې دواړو خبروکښې یوه هم نه وی نو عمل بې کاره دې.

**دمرګ نه پس بیا ژوندی کیدل:**-بیا فرمائي چه اې نبی ﷺ که چرې ته دوی ته اووائې چه د مرګ نه پس بیاهم ژوندی کیدونکی نې،کوم خالق چه تاسویې اول خل پیداکړی نې هغه به موبیا راپیداکوی نو صفا به وائي چه مونږ دا نه منو سره د دې خبرې چه قائل دی د زمکې او آسمان پیداکونکې هم الله ﷻ دې.[۵] ښکاره خبره ده چه په شروع کښې په چا ګرانه نه وی نود هغه دوباره راپیداکول به څنګه ګراشې؟ دا خوپه نسبت د اول خل ډیرآسان دی. دالله ﷻ فرمان دې ﴿وَهُوَ الَّذِي يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُ وَهُوَ أَهْوَنُ عَلَيْهِ﴾ هم هغه اول پیداکول په شروع کښې کړی او هم هغه به بیا ژوندی کول کوی اودا خوپه هغه باندې ډیر آسان دی. او په آیت کښې دی ستاسو د ټولو جوړول او وژل او سوزول په ما باندې داسې دی [۶] لکه د یوکس خودا خلق دا نه منی او داپه ښکاره جادو سره تعبیرکوی. دکفر اودښمننئی په وجه دا قول د جادو اثر خیال کوی. بیا فرمائي چه مونږ به عذاب او نیول د هغوی نه د څه مودې پورې روستوکړو نو دوی به هغه نه راتلونکې ګڼړی او تندی به کوی چه عذاب زمونږ نه ولې روستو کړې شو؟ د هغوی په زړه

[۱] احمد:۱۲/٤، ترمذی کتاب تفسیر القرآن باب ومن سورة هود:۳۱۰۹، وسنده حسن، ابن ماجه: ۱۹۲، ابن حبان:٦١٤١.
[۲] حاکم:۲/۳٤۱.
[۳] ۳۸/ص :۲۷.
[٤] ۵۲/الذاریات: ۵٦.
[۵] ۳۱/لقمان:۲۵.
[٦] ۳۱/لقمان: ۲۸.

کښي کفر او شرک داسي ناست دي چه دي نه خلاصيدي نه شي.

**په قران پاک کښي د امة کلمې معني**::د امت لفظ په قرآن او حديث کښي په څو معنوکښي استعمال شوي دي،ددي نه مراد موده هم ده. په دي آيت کښي او په بل آيت کښي ﴿وَادَّكَرَ بَعْدَ أُمَّةٍ﴾ کوم چه په سورة يوسف کښي دي هم په دغه معنی کښي چه امام او مقتداء په معنی کښي هم دا لفظ راغلي دي. لکه چه د حضرت ابراهيم خليل الله ﷺ په باره کښي ﴿أُمَّةً قَانِتًا﴾راغلي دي. دملت او دين باره کښي هم دا لفظ راخی لکه چه دمشرکانو قول دي ﴿ إِنَّا وَجَدْنَا آبَاءَنَا عَلَىٰ أُمَّةٍ ﴾ اود ډلي په معنی کښي هم راخی﴿ وَجَدَ عَلَيْهِ﴾ والا آيت کښي اوآيت ﴿وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ﴾ کښي او بل آيت کښي ﴿ وَلِكُلِّ أُمَّةٍ رَسُولٌ﴾ په دي آياتونو کښي د امت نه مراد کافران او مؤمنان ټول امتيان دی لکه چه د مسلم په حديث کښي دی د هغه قسم دچا په قبضه کښي زما ځان دي دي امت کښي چه کوم يهودي اونصرانی زما نوم واوری او په ما ايمان رانوړی هغه دوزخی دي[1] اوتابعدار امت هغه دي چه رسولان اومنی لکه ﴿ كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ﴾ والا آيت کښي. په صحيح حديث کښي دی چه زه به وايم چه امتی امتی[2]دغه شان دامت لفظ د فرقي او ډلي د پاره هم استعماليږی لکه چه په آيت ﴿مِنْ قَوْمِ مُوسَىٰ أُمَّةٌ﴾کښي اولکه په آيت ﴿مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ أُمَّةٌ قَائِمَةٌ﴾ کښي.

| وَلَئِنْ | أَذَقْنَا | الْإِنْسَانَ | مِنَّا | رَحْمَةً | ثُمَّ | نَزَعْنَاهَا | مِنْهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اوکه چري | اوڅکوو مونږه | انسان ته | دطرفه زمونږ نه | رحمت | او بيا | واخلو مونږه هغه | د هغه نه |
| اوکه مونږ يو انسان ته ديو نعمت خوند ورکړو.......... او بيا ئي تري نه واپس واخلو | | | | | | | |
| إِنَّهُ | لَيَئُوسٌ | كَفُورٌ | وَلَئِنْ | أَذَقْنَاهُ | نَعْمَاءَ | بَعْدَ | |
| بيشکه هغه شی | خامخا نااميده | ناشکره | اوکه چري | اوڅکوو مونږ په هغه | نعمت | روستو | |
| نو (په هغه وخت کښي)هغه نااميده شي اوناشکره شي \| اوکه نعمتونه ورته دتکليف نه پس ورکړو نو | | | | | | | |
| ضَرَّاءَ | مَسَّتْهُ | لَيَقُولَنَّ | ذَهَبَ | السَّيِّئَاتُ | عَنِّي | إِنَّهُ | |
| دمصيبت نه | چي رسيدلي وی هغه ته | نوخامخاواني به | چي لاړي | اسختياني | زما نه | بيشکه هغه | |
| .......وائی چي بس زما غمونه او دردونه لاړل \| (په داسي حال کښي) ډير | | | | | | | |
| لَفَرِحٌ | فَخُورٌ | إِلَّا | الَّذِينَ | صَبَرُوا | وَعَمِلُوا | الصَّالِحَاتِ | |
| ډير خوشحاله | فخرکونکي وي | مګر | هغه کسان | چي صبر ئي اوکړو | اوعمل ئي اوکړو | نيک | |
| غرور او فخر کونکي وی \|.........مګر هغه کسان چي صبر کوی\|......... اونيک کارونه کوی | | | | | | | |
| أُولَٰئِكَ | لَهُمْ | مَغْفِرَةٌ | وَأَجْرٌ | كَبِيرٌ | | | |
| دا کسان چي دی | ددوئ دپاره | ښښنه | او بدله | لويه ده | | | |
| دهغوئ دپاره ښښنه هم ده\|او لوئي اجر هم دي\| | | | | | | | |

**قوله تعالی:: إِلَّا الَّذِينَ صَبَرُوا**

**په تکليف اوردکښي صبر کول د ښښني ذريعه ده:-** د کامل ايمان والا نه بغير عموماً چه په خلقو کښي کومي بدئی دی د هغې بيان کولې شي چه د راحت د وخت نه پس په سختئی باندې مايوسه او محض

[1] صحيح مسلم كتاب الايمان برسالة نبينا محمد ﷺ الى جميع الناس:١٥٣.

[2] صحيح بخاری كتاب التوحيد باب كلام الرب تعالى يوم القيامة مع الانبياء وغيرهم: ٧٥١٠، صحيح مسلم: ١٩٣.

نااميده كيږي.د الله ﷻ نه بدګماني كولوسره د راتلونكي وخت د پاره ښيګړه هيره كړي. لكه هغه چه د دي نه وراندي نه څه آرام كړي وو او يا د دي نه پس د څه راحت اميد شته. هم دغه حال د دې برخلاف هم دي كه د سختئى نه پس اساني شوه نو وائي چه بس اوس خراب وخت تيرشو په خپل حالت او خپلو خواوشا سره څيزونوباندي مست او بې فكره كيږي. په نوروباندې ځان ښائي په كبركښي پريوځي اود وړاندې سختئى نه بالكل بې پرواه كيږي اودا خبره ده چه ايماندار د دې بد خصلت نه محفوظ وي هغوى په تكليف اودردكښي صبركوي په راحت او آرام كښي د الله ﷻ فرمانبرداري كوي. دوى په صبر باندې ښبنه او په نيكئى باندې ثواب حاصلوي. په حديث شريف كښي دي چه په هغه ذات قسم د چا په قبضه كښي چه زما روح دي چه مؤمن ته څه داسې سختي، څه مصيبت، يا څه غم خفګان داسې نه رسي دكوم په وجه چه الله ﷻ هغه ته خطاګانې نه معاف كوي تردې پورې چه په ازغى تلو باندې هم. (۱) د بخاري او مسلم شريف په حديث كښي دي د مؤمن د پاره د الله ﷻ هره فيصله سراسر بهتري او هم بهتري وي. دې راحت باندې شكر كوي او ښيګړې راغونډوي.اوپه تكليف باندې صبركولو سره نيكي ګټي. دا حال د مؤمن نه علاوه د بل چا نه شي كيدي(۲) هم د دې بيان په سورة العصركښي هم دي. يعني د مازيګر د وخت قسم ټول انسانان په نقصان كښي دي بغير د هغوىنه چه ايمان ئي راوړي او ورسره نيكي هم كوي اويوبل ته د حق دين او صبر هدايت كوي. هم دغه بيان په آيت ﴿ إِنَّ الْإِنسَانَ خُلِقَ هَلُوعًا﴾ الخ دي.

فَلَعَلَّكَ تَارِكٌۢ

| نوشايد چې تۀ| پريښودونكي شي

كيدي شي چي تۀ

بَعْضَ مَا يُوحَىٰٓ إِلَيْكَ وَضَآئِقٌۢ بِهِۦ صَدْرُكَ أَن يَقُولُوا۟

خيني هغه څه|چې وحي ئې كولې شي| تاته |اوتنګيدونكى شي|په دې خبرې سره|سينه ستا| چې وائي به دوئ

در الله ﷻ د) وحي نه څه حصه (د دوئ د وجې) پريږدې |او ستا زړه د دوى د دې وينا په وجه تنګيږي

لَوْلَآ أُنزِلَ عَلَيْهِ كَنزٌ أَوْ جَآءَ مَعَهُۥ مَلَكٌ ۚ إِنَّمَآ أَنتَ

ولي نازله نۀ شوه|په دۀ باندې |خزانه|يا ولې رانغله| ددۀ سره | فرشته |بيشكه خبره داده | چې تۀ

............چې په دۀ باندې خزانه ولې راكوزه نشوه | يا داچې فرشته ورسره ولې رانغله |تۀ خوبس

نَذِيرٌ ۚ وَٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ وَكِيلٌ ۝ أَمْ يَقُولُونَ ٱفْتَرَىٰهُ ۖ

ويرونكې يې | او الله | په هر څيز | نګهبان دي | يا وائي دوئ |چې دۀ د خانه جوړكړي دي داقران

ويرونكې يې |او(مخكښې) الله دهرڅه كار ساز دي| ايا دوئ دا وائي چې دا(كتاب) ګني دۀ د خانه جوړ كړي دي

قُلْ فَأْتُوا۟ بِعَشْرِ سُوَرٍ مِّثْلِهِۦ مُفْتَرَيَٰتٍ وَٱدْعُوا۟

ورته اووايه | نو راوړئ تاسو |لس سورتونه | په شان ددې | دخانه جوړكړي شوى | اوراوغواړئ

ورته اووايه چې ښه ده نو ددې پشان يو لس سورتونه تاسو هم په دروغه جوړ كړئ | او د الله ﷻ نه

---

(۱) صحيح بخاري كتاب المرضى باب ماجاء في كفارة المرض:۵٦٤۱-۵٦٤۲،صحيح مسلم:۲۵۷۳، احمد:۳۳۵/۲،ترمذي: ۹٦٦، ابن حبان:۲۸۰۵، بيهقي:۳۷۳/۳.

(۲) صحيح مسلم: كتاب الزهد باب المؤمن امره كله خير:۲۹۹۹، احمد:۳۳۲/٤، ابن حبان:۲۸۹٦.

| مَنِ | اسْتَطَعْتُمْ | مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ | اِنْ كُنْتُمْ | صٰدِقِيْنَ۝ | فَاِنْ |
|---|---|---|---|---|---|
| هغه څوك | چې رابللې شئ تاسو | ماسوا دالله نه | كه چرې يئ تاسو | رښتيني | نو كه چرې |
| ......سوا چې په چامو وس رسی هغه راوبلئ | كه تاسو ريښتوني يئ (چه دا كتاب ما جوړ كړې دی) | | | | |

| لَّمْ يَسْتَجِيْبُوْا | لَكُمْ | فَاعْلَمُوْٓا | اَنَّمَآ | اُنْزِلَ | بِعِلْمِ اللّٰهِ | وَاَنْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| جواب نې درنه كړو | تاسوته | نو پوهه شئ | چې بيشكه | دا نازل شوې دې | په علم دالله سره | او دا چې |
| نو كه دوئ داكار اونكړې شی | نو يقين اوكړئ چې دا (كتاب) دالله ﷻ په علم (او په قدرت) راغلې دې | | | | | |

| لَآ | اِلٰهَ | اِلَّا | هُوَ | فَهَلْ | اَنْتُمْ | مُّسْلِمُوْنَ۝ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نشته | لائق دعبادت | مګر | (هم) هغه دې | نو آيا | يئ تاسو | تابعداری كونكي |
| اودا چې دالله ﷻ نه سوا بل معبود نشته | نو ايا تاسو (اوس هم) نۀ مسلمانيږئ | | | | | |

**قوله تعالٰی:: لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْهِ كَنْزٌ**

**په دين كښې پيغورونه كول دكافرانو طريقه ده:**-كافران خلق چه دهغوی په ژبوكوم څه راتله هم هغه پيغوريه نې په رسول اللهﷺ باندې كولو. نو الله ﷻ خپل رښتونی پيغمبرﷺ ته دلاسا اوتسلی وركوی چه ته نه بدې كاركښې سستی كوه او مه زړه تنګه وه.دا خودهغوی طريقه ده كله وائی چه كه دا رسول دې نوخوراك څښاك ولې محتاج دې؟ بازارونوته ولې خی راځی؟ دده په ملګرتياكښې يوه فرښته هم ولې نشته؟ ده له څه خزانه ورلې نه ده وركړې شوې؟ دده د خوراك دپاره يو خاص قسم باغ ولې نه دې جوړكړې شوې؟مسلمانانو ته به نې پيغمورونه وركول چه تاسو خوهغه چا پسې شوی نې چه په چا جادو شوې وی[1]نوالله ﷻ فرمائی چه اې پيغمبرﷺ! ته خفه كيږه مه د زړه آرزودې هغه نه وی چه د خپل كار نه منع شې. هغوی ته د حق آواز اورولو نه كوتاهی مه كوه.شپه ورځ د الله ﷻ طرف ته بلنه كوه. مونږ ته معلومه ده چه دهغوی دخفګان خبرې په تا خرابې لګی ته توجو هم مه وركوه هسې نه چه ته څه خبره پريږدې يا زړه تنګ كړې او په آرام كينې چه دوی خو توقې كوی اومسخرې كوی. خپل خان نه وړاندې رسولانو ته اوګوره د تولو تكذيب شوې وو تكليفونه نې وررسولې وو او ثابت قدم او صابر پاتې وو. تر دې چه د الله امداد رااورسيدو.

**منكرين د قران ته چيلنج:**:بيا نې د قرآن پاك معجزه بيان كړه چه د دې په شان قرآن چرته نه راوړنی؟ د دې په شان لس سورتونه بلكه يوسورت هم تولو دنيا كه يوځائ كړنی نه شنی راوړې. څكه چه دا د الله ﷻ كلام دې اولكه څنګه چه د هغه ذات د مثال نه پاك دې دغه شان د هغه صفتونه هم بې مثاله دی. اونامسكنه دی چه ددې په شان كلام دې دمخلقو كلام هم شی.د الله ﷻ ذات ددې نه پاك او خلاص دې. محبوب او رب هم هغه وی. چه كله تانه داسې نه شی كيدلې اوتراوسه پورې نه نی شوې نو يقين اوكړنی چه تاسو ددې د جوړولو نه عاجز نې. په حقيقت كښې دا د الله ﷻ كلام دې اوهم د هغه د طرف نه نازل شوې دې. ددې علم هم د هغه د حكم احكام اود هغه بنديز په دې كښې او ورسره دا هم اومننی چه معبود برحق هم هغه دې.نو راشنی د اسلام د جنهډې لاندې اودريږنی.

[1] ۲۵/الفرقان:۷.

مَنْ كَانَ يُرِيْدُ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا وَزِيْنَتَهَا نُوَفِّ اِلَيْهِمْ اَعْمَالَهُمْ

هغه څوك چې غواړي | د ژوند د دنيا | اوښائست دهغې | انو پوره ورکوو مونږ | هغوئ ته | جزا دعملونو دهغوئ

څوک چې ددې دنيا ژوندون او د دې رونق غواړي انو مونږ ورته د هغوی عملونه هم په دې دنيا کښې وربوره کړو

فِيْهَا وَهُمْ فِيْهَا لَا يُبْخَسُوْنَ۝ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ

په دې کښې|او هغوی ته به | په دې دنيا کښې| کم نهٔ شي ورکولې| دا ډله | هغه خلق دي

او د هغوئ سره به په دې دنيا کښې لږ شان کمې هم نهٔ کيږي| دا هغه خلق دی چې په

لَيْسَ لَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ اِلَّا النَّارُ ۖ وَحَبِطَ مَا صَنَعُوْا

چې نشته | دوئ دپاره | په آخرت کښې | مګر | اور |اوبرباد شو | هغه څه | چې جوړ کړئ وو دوئ

اخرت کښې د دوی دپاره د اور نه سوا بل هيڅ نشته |اوهر څه چې ئې په دنيا کښې کړی دی هغه

فِيْهَا وَبٰطِلٌ مَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ۝

په دې دنيا کښې |او باطل دی | هغه ټول | چې وو دوئ | چې کول به ئې |

به دوی دپاره په اخرت کښې بې کاره او بې قيمته ثابتيږی

**قوله تعالى:: مَنْ كَانَ يُرِيْدُ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا**

**د عملونو دارومدار په نيت باندې دې**:-ابن عباس رضي الله عنه فرمائی چه د رياکارانوخلقو د نيکوبدله هرڅه هم په دې دينا کښې ملاويږی. او په دې کښې هيڅ کمې نه شی کولې. نو چه کوم خلق د دينا د خودنې د پاره مونځ کوی روژې نيسی يا تهجد کوی د دې اجر دوی ته هم په دنيا کښې ملاويږی. په آخر کښې هغوی خالی لاس اوصرف بې عمل راپاسی.[1] دانس رضي الله عنه وغيره بيان دې چه دا آيت ديهوديانواو نصاراؤ په حق کښې نازل کړې شوی دې. [2] او مجاهد رحمه الله وائی چه د رياکارانو باره کښې نازل شوې دې[3] غرض چه د چا کومه اراده شوه هم د هغې مطابق چه هغه سره معامله کيږی. د دنياد غوښتلود پارد چه کوم اعمال وی هغه پد آخرت کښې پکار نه شی راتلې.

**هرکال کښې ددنيا نه بلکه د اخرت نيت پکار دې** ::د مؤمن نيت اومقصد خود آخرت طلب کول دی نو الله ﷻ هغه ته د هغه عمل بهترين بدله ورکولې شی او په دنياکښې هم د هغه نيکئ په کارراځي. په يو مرفوع حديث کښې هم دا الفاظ هم ددې مضمون راغلی دی. دقرآن کريم آيت [مَنْ كَانَ يُرِيْدُ الْعَاجِلَةَ عَجَّلْنَا لَهٗ فِيْهَا مَا نَشَآءُ لِمَنْ نُّرِيْدُ ثُمَّ جَعَلْنَا لَهٗ جَهَنَّمَ ۚ يَصْلٰهَا مَذْمُوْمًا مَّدْحُوْرًا] کښې هم د دې تفصيلی بيان دې. د دنيا غوښتنه په خلقوکښې شته. که هغوی له مونږ کوم قسم اوڅومره قدرې غواړې ورکوړو بيا دده ځائ دوزخ کيدې شی چرته به چه دې خوار او ذليل داخليږی. د چا غوښتنه چه د آخرت وی او هم د دې مطابق عمل کوی او ايماندارهم وی نود داسې خلقو د کوششونو قدر کول پکاردی. دوی او د دوی هر يو مونږ ستا درب په ورکړه کښې زياتوو. ستا د پروردګار انعام د چانه بند شوې نه دې. نو ته ګوره چه مونږ څنګه يو له په بل باندې فضيلت ورکړې دې.آخرت ولې څه په اعتبار د درجو او څه په اعتبار دفضيلت ډير لوئ يو

---

[1] الطبری:۱۵/۲۶۳.

[2] ايضًا:۱۵/۲۶۵.

[3] ايضًا:۱۵/۲۶۶.

زبردست خيز دي او په آيت كښې دي ﴿مَنْ كَانَ يُرِيْدُ حَرْثَ الْاٰخِرَةِ نَزِدْ لَهٗ فِيْ حَرْثِهٖ ۚ وَمَنْ كَانَ يُرِيْدُ حَرْثَ الدُّنْيَا نُؤْتِهٖ مِنْهَا وَمَا لَهٗ فِي الْاٰخِرَةِ مِنْ نَّصِيْبٍ۝﴾ دچا اراده چه د آخرت د پټي وي نو مونږ پخپله په هغې كښې بركت اچوو. اود چا اراده چه ددنيا د پټي وي نو كه غواړو هغه له په دې كښې څه وركوو خو په آخرت كښې هغه بې نصيبه پاتې كيږي.

اَفَمَنْ | كَانَ
آيا نو هغه څوك | چې وي
نو آيا كوم خلق چې

عَلٰى بَيِّنَةٍ | مِّنْ رَّبِّهٖ | وَيَتْلُوْهُ | شَاهِدٌ
په واضح دليل باندې | دطرفه درب خپل نه | اوروستو روستو راځي په دغه دليل پسې | يو ګواه
دخپل پروردګار په ښكاره دليل قائم وي | اود هغوى سره يو (آسماني) ګواه هم د هغه د طرفه وي

مِّنْهُ | وَمِنْ قَبْلِهٖ | كِتٰبُ مُوْسٰٓى | اِمَامًا | وَّرَحْمَةً ؕ | اُولٰٓئِكَ
دطرفه دالله نه | اومخكښې ددې نه وى | كتاب دموسى | په طور د پيشوا | او د رحمت | داكسان چې دي
اود دۀ نه وړاندې دحضرت موسى ؑ كتاب وى | چې پيشوا او رحمت دې نو آيا دوى به په قرآن ايمان نۀ راوړي؟ هم دا خلق

يُؤْمِنُوْنَ | بِهٖ ؕ | وَمَنْ يَّكْفُرْ | بِهٖ | مِنَ الْاَحْزَابِ | فَالنَّارُ
ايمان راوړى | په دې باندې | اوهغه څوك چې انكار ني اوكړو | ددې نه | د (نورو) ډلو نه | نو اور
خو په قرآن پاك ايمان راوړي | اود نورو فرقو نه چې څوك د دې نه منكر وى | نو د هغه د پاره

مَوْعِدُهٗ ۚ | فَلَا تَكُ | فِيْ مِرْيَةٍ | مِّنْهُ ۗ | اِنَّهُ | الْحَقُّ | مِنْ رَّبِّكَ
ځاى دوعدې دهغه دې | نومۀ كيږه ته | په شك كښې | ددې نه | بيشكه دا | حق دي | دطرفه د رب ستانه
مقررشوې ځاى اور دې | نو تۀ په دې باره كښې په شك شبهه كښې مۀ پريوزه | بيشكه دا كلام

وَلٰكِنَّ | اَكْثَرَ النَّاسِ | لَا يُؤْمِنُوْنَ۝
وليكن | زيات د خلقو نه | ايمان نۀ راوړي |
ستا د رب د طرفه حق دي | خوزيات خلق پرې ايمان نۀ راوړي |

قوله تعالى: اَفَمَنْ كَانَ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّهٖ

**د انسان پيداكيدل په فطرت باندې كيږي:-** ددغه مؤمنانوصفت بيانيږي كوم چه په فطرت باندې قايم دى. چه د الله ﷻ وحداينت د زړه نه منى. لكه چه د الله ﷻ حكم دې. ﴿وَاَنْ اَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّيْنِ حَنِيْفًا ۚ وَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ۝﴾ خپل مخ په دين حنيف باندې قايم اوساتئ د الله ﷻ فطرت په كوم چه انسانى فطرت خور كړې دې. په بخارى اومسلم شريف كښې دى رسول الله ﷺ فرمانى هرماشوم په خپل فطرت باندې پيدا كيږي. بيادهغه مور پلار هغه يهودى، نصرانى يا مجوسى جوړوى. لكه څنګه چه د څناور بچې صحيح سالم پيدا كيږي بيا خلق د هغې غوږ پريكوى[1] دمسلم شريف په حديث قدسى كښې دى ما خپل تول

[1] صحيح بخارى كتاب الجنائز باب ماقيل فى اولاد المشركين:۱۳۸۵، صحيح مسلم: ۲۶۸۵، ابوداؤد:۴۷۱۴، ترمذى:۲۱۳۸، احمد:۲/۳۷۵، موطاامام مالك:۱/۲۴، مسندالطيالسى:۲۲۵۹، ابن حيان:۱۲۹.

بنيادمان موحد پيدا كړې دې خو بيا شيطان راشي او هغه د خپل دين نه اړوي او زما حلال كړې شوې څيزونه په هغوى باندې حرام كوي. او هغوى ته وائي ما سره هغه شريك كړئې د كوم چه ما هيڅ دليل نه وى نازل كړې.[1] په مسند او سنن كښې دي چه هر ماشوم په هغه دين باندې پيدا كيږي تردې پورې چه د هغه ژبه كولاؤ شي الخ.[2] نو مؤمن هم د الله ﷻ په فطرت باندې پاتې كيږي نو يو خود هغه فطرت صحيح سالم وى بياهغه له رباني شاهد راځي.يعني دالله ﷻ معرفت پيغمبر ﷺ ته رسي.د كومو شريعتونه چه د حضرت محمد ﷺ شريعت سره ختم شو. نو د شاهدنه مراد حضرت جبرائيل عليه السلام دې.يا حضرت محمد ﷺ دې.دالله ﷻ رسالت اولاًحضرت جبرائيل عليه السلام راوړو اود هغوى په ذريعه حضرت محمد ﷺ ته.

**د شاهد نه مرادحضرت علي اخستل غلط دى::** يوقول دا وئيلې شوې دې چه هغه علي رضي الله عنه دې خودا قول ضعيف دې د دې څه قائل ثابت نه دې. حق خبره هم ړومبني ده. نو د مؤمن فطرت د الله ﷻ وحى سره ملاويږي په اجمالي توګه هغه ته د اول نه يقين وى بيا د شريعت تفصيلات مني. د هغه فطرت د يوې يوې مسئلې تصديق كوي. نو فطرت سليم هغه سره د د قرآن پاك تعليم كوم چه جبرائيل عليه السلام د الله ﷻ نبي ﷺ رسولې دې او حضور ﷺ بيا خپل امت ته. بيا د دې نه وړاندې يو بل تائيد هم د موجوده كتاب موسى عليه السلام يعنى تورات كوم چه الله ﷻ د هغه وخت د امت د پاره د وړاندې كولو قابل جوړ كړو ليګلي وو. او كوم چه د الله ﷻ د طرف نه رحمت وو. په دې چه د كومو پوره ايمان وو هغه به لامحاله په دې نبي ﷺ او په دې كتاب باندې ايمان راوړي. ځكه چه دغه كتاب هم په دې كتاب د ايمان راوړو لارخودنه كړې ده. نو دا خلق په دې كتاب هم ايمان راوړي.

**د قرآن پاك انكاركونكي دوزخيان دى:-** بيا د پوره قرآن پاك يا د دې يوه حصه نه منونكو د سزا بيان اوفرمانيلو چه په دنيا والاكښې كومه يوه ډله يافرقه دا اونه مني که هغه يهودى وى كه نصراني كه د كوم ځاى او څوك وى د كوم رنګ نسل او شكل وى قرآن پاك وراورسيدو او وئې نه منلو دوزخي دې لكه څنګه چه الله رب العالمين دخپل نبي ﷺ په ژبه مباركه هم په دې قرآن پاك كښې فرمانيلى﴿ لِأُنذِرَكُم بِهِۦ وَمَنۢ بَلَغَ ﴾ چه زه دې نه تاسو هم خبروم او هغوى هم چاته چه دارسيدلې وى.

**د اخرى نبي نه منوونكى چې هرڅوك دى هغه هم دوزخي دى::** او په آيت كښې دى ﴿قُلْ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِنِّى رَسُولُ ٱللَّهِ إِلَيْكُمْ جَمِيعًا﴾ په خلقو كښې اعلان اوكړئې چه اې انسانانو ازه ستاسوټولوطرف ته د الله ﷻ پيغمبر يم. په صحيح مسلم كښې دى رسول الله ﷺ فرمائي په هغه ذات قسم د چا په قبضه كښې چه زما ځان دې د دې امت نه چه څوك هم زما نه واورى او بيا په ما باندې ايمان رانوړى هغه دوزخي دې.[3] حضرت سعيد بن جبير رحمه الله فرمائي څوك چه صحيح حديث اورى د هغې تصديق به د الله ﷻ په كتاب كښې ضرور بيامومي. دا پورتنې حديث اوريدو باندې زه د دې په لټون كښې اووتلم چه د دې تصديق د قرآن پاك د كوم آيت نه كيږي. نوماته دا آيت ملاوشو نود دې نه ټول دين والا مراد دى. بيا د الله ﷻ د طرف نه ارشاد كيږي چه د دې قرآن پاك بارهٔ كښې د الله ﷻ نه په سراسر حق كيدوكښې هيڅ شك شبه نه دى كول پكار. لكه څنګه چه ارشاد دې:چه دا دې كتاب د رب العالمين د طرف نه نازليدو كښې هيڅ شك شبه نشته.[4] بل ځاى كښې دى ﴿ذَٰلِكَ ٱلْكِتَـٰبُ لَا رَيْبَ ۛ فِيهِ ۛ﴾په دې كتاب كښې هيڅ شك

---

[1] صحيح مسلم: كتاب الجنة باب الصفات التى يعرف بها فى الدنيا اهل الجنة واهل النار:۲۸۶۵،احمد:۱۶۲/٤.

[2] احمد:۴۳۵/۲، دارمى:۲۲۳/۲، بيهقى: ۷۷۱۹،المعجم الكبير:۹۲۶،ابن حبان:۱۳۲، حاكم:۱۲۳/۲.

[3] صحيح مسلم كتاب الايمان باب وجوب الايمان برساله نبينا محمد ﷺ الى جميع الناس: ۱۵۳.

[4] ۳۲/السجده: ۱-۲.

نشته. بیا ارشاد کیږي چه اکثر خلق د ایمان نه خالي وي لکه چه ارشاد دې ﴿وَمَا أَكْثَرُ النَّاسِ وَلَوْ حَرَصْتَ بِمُؤْمِنِينَ﴾ یعنی که ستاغوښتنه وي هم خو یقین اوکړه چه اکثر خلق به مؤمنان نه وي. اوپه بل آیت ﴿وَإِنْ تُطِعْ أَكْثَرَ مَنْ فِي الْأَرْضِ يُضِلُّوكَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ﴾ کښې دي که ته چرې د دنیا والا دخلقو د اکثریت پیروي اوکړې نو هغوی به تا د الله ﷻ د لارې نه واړوي. او په بل آیت کښې دی ﴿وَلَقَدْ صَدَّقَ عَلَيْهِمْ إِبْلِيسُ ظَنَّهُ فَاتَّبَعُوهُ إِلَّا فَرِيقًا مِنَ الْمُؤْمِنِينَ﴾ یعنی په هغوی باندې ابلیس خپل ګمان رښتیا اوخودلو اوعلاوه د یو مختصر ډلې نه باقي ټول هغه پسې اولګیدل.

وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَىٰ

| اوڅوک دي | لوئي ظالم | ادهغه چانه| چي دخانه جوړوي

| اودهغه چا نه لوئ ظالم څوک کیدیشي

عَلَى اللَّهِ كَذِبًا ۚ أُولَٰئِكَ يُعْرَضُونَ عَلَىٰ رَبِّهِمْ وَيَقُولُ الْأَشْهَادُ

په الله باندې| دورغ | داکسان چي دی | وړاندې کړې کیږي به دوئ| رب خپل ته| اووانی به| ګواهان

چي په الله ﷻ باندې دروغ اوتړي |داسې خلق به خپل رب ته پیش کولې شي| او ګواهان به

هَٰؤُلَاءِ الَّذِينَ كَذَبُوا عَلَىٰ رَبِّهِمْ ۚ أَلَا لَعْنَةُ اللَّهِ

چي هم دوئ دی |هغه کسان | چي دروغ ئي تړلي وو | په رب خپل باندي| خبردار | لعنت دالله دي

پرې ګواهي ورکوی |چي دا هغه خلق دی چي پخپل رب ئي دروغ تړلي وو| واوری چي په ظالمانو

عَلَى الظَّالِمِينَ ۝ الَّذِينَ يَصُدُّونَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ وَيَبْغُونَهَا

په ظالمانو باندې| کوم چي | منع کوی(خلق) | د لارې د الله نه | اولټوی په دې لارې کښې

باندې دالله ﷻ لعنت وریږی | دا هغه کسان دی چي دالله ﷻ دلارې نه نور خلق منع کوی| او په هغې

عِوَجًا وَهُمْ بِالْآخِرَةِ هُمْ كَافِرُونَ ۝ أُولَٰئِكَ لَمْ يَكُونُوا مُعْجِزِينَ

کوږوالي| او دوئ| د آخرت نه | هم دوئ | منکران دی| دا کسان | نه وو دی |عاجزه کونکي(الله لره)

کښې کوږوالي لټوی| او د آخرت نه هم منکر دی |..........دوئ (الله ﷻ) په زمکه عاجزه کولې نشی

فِي الْأَرْضِ وَمَا كَانَ لَهُمْ مِنْ دُونِ اللَّهِ مِنْ أَوْلِيَاءَ ۘ يُضَاعَفُ لَهُمُ

په زمکه کښې| او نه به وی | دوئ د پاره | ما سوا د الله نه | څوک دوست | دوچند به ورکړې شي| دوئ نه

او د الله ﷻ په مقابله کښې ئي بل څوک مددګار هم نشته |دائي پیغمبره ﷺ دوئ ته به دوچنده............

الْعَذَابُ ۚ مَا كَانُوا يَسْتَطِيعُونَ السَّمْعَ وَمَا كَانُوا يُبْصِرُونَ ۝

عذاب | نه وو دوئ | چي طاقت ئي لرلي شو | داوریدو | اونه وو دوئ | چي لیدلې ئي وي(حق)

عذاب ورکولې شي|ځکه چي دوی په کفر کښې د شدت د وجې نه(ستا خبرې نه اورېدې شوې او نه ئې درته کتلې شو

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنْفُسَهُمْ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَا كَانُوا

داکسان|هغه خلق دی| چي تاوانیان ئي کړل|ځانونه خپل|او ورک شو| د هغوئ نه|هغه څه| چي وو هغوئ

د هغه کسان دی چي خپل ځان ئي تاواني کړې دې| او ئن ترینه ټول جوړ کړی معبودان ورک شو.......

| يَفْتَرُوْنَ ۝ | لَا جَرَمَ | اَنَّهُمْ | فِي الْاٰخِرَةِ | هُمُ |
|---|---|---|---|---|
| چې جوړ کړي ئې وو د خانه | هيڅ شک نشته | چې بيشکه هغوئ | په آخرت کښې به | هم هغوئ |
| ......لازمي خبره ده چې دوئ به په آخرت کښې د ټولو نه زيات زيانکاران وي | | | | |
| الْاَخْسَرُوْنَ ۝ | | | | |
| دټولو نه زيات تاوانيان وي | | | | |

قوله تعالى:: اُولٰٓئِكَ يُعْرَضُوْنَ عَلٰى رَبِّهِمْ

په الله ﷻ باندې دبهتان تړونکو انجام رسوائي ده:-کوم خلق چه په الله ﷻ باندې بهتان تړي د هغوی انجام به دقيامت په ورځ د ټول مخلوق په وړاندې د هغوی د رسوائي بيان کولې شي. مسند کښې دي چه صفوان بن محرز وائي چه ما دحضرت عبدالله بن عمر ﷺ لاس نيولې وو چه يو سړي هغوی له راغلو اوتپوس ئې اوکړو چه تادرسول الله ﷺ نه د قيامت باره کښې څه اوريدلي دي؟ هغوی اوفرمائيل چه ما دحضور ﷺ نه اوريدلی دي چه الله ﷻ به مؤمن خپل خان ته نيزدې کړي تردې چه خپل لاس به په هغه باندې کيږدي اوهغه به د خلقو د نظرونو نه پټ کړي اوبه هغه باندې به د خپلو گناهونو اقرار اوکړي چه تاته فلانکې گناه ياده ده؟ اوفلانکې هم؟ اوفلانکې هم؟دې به اقرار کوي اوتردې چه اوبه گنړي چه بس اوس هلاك شوم.هغه وخت به ارحم الرحمين فرمائي زما بنده مابه تاباندې په دنياکښې پرده اچوله واوره نن هم زه تابښم بيا به هغه ته دهغه د نيکوعمل نامه ورکولې شي اوبه کافرانو او منافقانو باندې به گواه پيش کولې شي چه وائي به چه هم دغه دي چه په الله ﷻ باندې به ئې دروغ وئيلي.ياد ساتئ چه په دې ظالمانوباندې د الله ﷻ لعنت دې. دا حديث په بخاري او مسلم کښې هم دي.[1] دې خلقو به د حق د تابعدارئی، د هدايت د لارې نه اود جنت د لارې نه خلق منع کول او خپله لاربه ئې کګه وګه لټوله او دې سره دقيامت د ورځې او آخرت د ورځې منکر هم وو اوداً به ئې هډو منل نه.يادساتئ چه دوی د الله ﷻ ماتحت دي او هغه د دوی نه هروخت انتقام اخستلو باندې قادردې.که غواړې نود آخرت نه اول به ئې په دنيا کښې راګيرکړي خود هغه د طرف نه لړشان ډهيل هغه ته ملاؤشوی دی.
بخاري اومسلم کښې دي الله ﷻ ظالمانوته مهلت ورکوی خو چه آخر ئې راګيرکړي نو بيا ئې نه پريږدي[2]دهغوی سزاګانې هم زياتيږي خکه چه دالله ﷻدورکړې شوو قوتونونه هغوی کار وانه خستلو د حق د اوريدلونه ئې غوږونه کانړه کړل اود حق د تابعدارئی نه ئې سترګې ړندې کړي دي. دوزخ ته په تلوکښې به پخپله وائي چه ﴿لَوْكُنَّا نَسْمَعُ اَوْنَعْقِلُ مَاكُنَّا فِيْٓ اَصْحٰبِ السَّعِيْرِ ۝﴾ يعنی که اوريدل مو،عقل مو لرلو نو نن به دوزخيانو نه جوړيدو. هم دغه فرمان په آيت ﴿اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ زِدْنٰهُمْ عَذَابًا فَوْقَ الْعَذَابِ﴾ کښې دې چه په کافرانوباندې اود الله ﷻ د لارې نه په بندونکوباندې به عذابونه زياتيږي. په هريو حکم نه منلو اوبه هره يوه بدئی باندې به سزاګانې خوري. صحيح قول دا دې چه د آخرت د نسبت په اعتبار سره کفار هم د فروع شرع مکلف دي. هم دغه دي هغه خلق چه خپل خان ته ئې نقصان رسولې او پخپله ئې خپل خان دوزخيان جوړکړي.دکوم خائ عذاب چه به لږ شان هم نه سپکيږي دأورشغلې خو کميدلې څه کوې چه نورې به تيزيږي. کوم کار چه هغوی د خان نه جوړکړې وو يعنی بتان او رب سره شريکان

[1] صحيح بخاری کتاب المظالم باب قول الله تعالى ﴿الالعنة الله على الظالمين﴾:٢٤٤١، صحيح مسلم:٢٨٦٨، احمد:٨٤/٢، ابن ماجه:١٨٣، ابن حبان:٧٣٥٥.

[2] صحيح بخاری کتاب التفسير سورة هود باب قوله ﴿وكذلك اخذربك إذا اخذالقرى وهى ظالمة...﴾:٤٦٨٦، صحيح مسلم:٢٥٨٣، ترمذی:٣١١٠، ابن ماجه:٤٠١٨،بيهقى:٩٤/٦، ابن حبان:٥١٧٥، شرح السنة:٤١٦٢.

وغيره هغه به نن د دوی په هيڅ کار رانه شي. بلکه ښکاري به هم نه اونورنقصان به هم وررسوي.
په قيامت کښې به عابدان اومعبودان ديو بل دښمنان شي:: هغه خو به د دوی دښمنان شي اود هغوی د شرك نه به صفامنكرشي.سره د دې چه دوی به دا دعزت سبب ګڼړلو خو په حقيقت کښې به هغه د دوی د پاره د ذلت سبب جوړشي. په ښکاره توګه به د قيامت په ورځ انکار کوی چه دې مشرکانو د دوی عبادت کړې وی([1]) هم دغه ارشاد دخليل الله ﷺ خپل قوم ته وو چه دې بتانوسره خوتاسو خپل دنياوی تعلقات قايم ساتلی خود قيامت په ورځ به د يو بل نه انکار کونې او په يوبل به لعنت کونې. اوستاسو د ټولو ځای به دوزخ وی او هيڅ څوك به هم د يوبل امداد نه شی کولې([2]) هم دامضمون په آيت ﴿إِذْ تَبَرَّأَ الَّذِينَ اتُّبِعُوا﴾ کښې دې يعنی دغه وخت به پيشوا خلق د خپلو مريدانو نه لاس راکاږی د الله ﷻ عذاب به په سترګو اووينی او د خپل مينځ تعلقات به ختم شي.د دې قسم نور هم ډير آياتونه دی هغه هم د دوی د هلاکت اونقصان خبرورکوی. يقيناً دغه خلق به دقيامت په ورځ د ټولونه زيات نقصان اوچتوی. د دوزخ کندې هغوی د جنت د درجو په بدله کښې واخستې. د الله ﷻ دنعمتونو په بدله کښې هغوی د دوزخ اور قبول کړو.دخوږو يخو او مزيداره جنتی اوبو په بدله کښې د دوزخ خوټکيدلې اوګرمې داور په شان اوبه به دوی ته ملاويږی.دحور عين په بدله کښې وينې زوې اود محلونوپه بدله کښې د دوزخ تنګ ځايونه هغوی واخستل.د الله ﷻ چه رحمن دې دهغه د نيزديکت اوديدار په بدله کښې هغوی دالله ﷻ غضب اوسزا خوښه کړه. بې شکه دلته دوی په سخت نقصان کښې پاتې شو.

| إِنَّ | الَّذِينَ | آمَنُوا | وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ |
|---|---|---|---|
| بيشکه | هغه کسان | چې ايمان ئې راوړو | اووې کړل عملونه نيک |

بيشکه چاچې ايمان راوړو او نيک کارونه ئې اوکړل | او د خپل پروردګار

| وَأَخْبَتُوا | إِلَىٰ رَبِّهِمْ | أُولَٰئِكَ | أَصْحَابُ الْجَنَّةِ | هُمْ | فِيهَا | خَالِدُونَ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوعاجزی ئې اوکړه | ارب خپل ته | داکسان | صاحبان دجنت دی | هغوئ به | په هغې کښې | هميشه وی |

تابعدار شول| ........................هم دغه خلق جنتيان دی| دوی به په هغې کښې هميشه وی

| مَثَلُ | الْفَرِيقَيْنِ | كَالْأَعْمَىٰ | وَالْأَصَمِّ | وَالْبَصِيرِ | وَالسَّمِيعِ |
|---|---|---|---|---|---|
| مثال | ددې دواړو ډلو | پشان د روند | او کوڼ سړی دې | او (بل) دليدونکی | اواوريدونکی سړی دې |

مثال دواړو ډلو داسې دې چه (يو کس خو) روند کوڼ وی| اوبل کس ليدونکې او اوريدونکې وی

| هَلْ يَسْتَوِيَانِ | مَثَلًا | أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ۝ |
|---|---|---|
| آيا دا دواړه برابر دی | په لحاظ دمثال سره | آيا تاسو نصيحت نه قبلوئ |

دا دواړه ګنې يو برابر کيديشی انو آيا تاسو (په داسې مثال هم) غور نه کوئ؟!

قوله تعالى:: أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ
د ايماندارو بدله جنت دې:-دخرابو خلقو دذکرنه پس اوس د خوخلقو بيان کولې شي.دچا زړونه چه د ايمان والاد چا اندامونه چه د حکم منونکو وو، په قول اوفعل سره د الله ﷻ حکم په ځای راوړونکی اود رب د نافرمانئ نه بچ کيدونکی وو.داخلق به د جنت وارثان وی.اوچتې بالاخانې،خواره او ښائسته

[1] ۴۶/الاحقاف:۶.
[2] ۲۹/العنکبوت:۲۵.

کړې شوی تختونه راتیتې شوې غونچې اودمیووونې پرسیدلی فرشونه یعنی قالینونه،ښائسته بیبیانې قسم قسم خوند ناکې میوې د خوښې خوراکونه مزیدارې اوبه اود ټولونه لویٔ د الله ﷻ دیدار دا نعمتونه به وی چه د هغوی د پاره به همیشه وی. نه به هغوی له مرګ راخی نه بوډاوالې، نه بیماری نه غفلت، نه ډکې متیازې نه تشې متیازې نه لاړې اونه پوزه دمشکودبوئی غوندې خوله راتلل او خوراك هضمیدل.

**کافر اومؤمن درجه کښې برابر نه دی:** اول بیان کړې شوی بدبختان کافران خلق او دا مؤمنان پرهیز ګاران خلق بالکل هم هغه نسبت لرې کوم چه په کوڼ، روند بینا او اوریدونکی کښې وی. کافران په دنیاکښې دحق کتلونه رانده وو اود آخرت په ورځ هم به دخیر طرف ته لار نه بیاموهی اونه به ئې وینی. هغوی د حقانیت د دلیلونو اوریدونه کاڼه وو او نفع ورکونکې خبره ئې د سره اوریده نه. که په هغوی کښې څه ښیګړه وه نوالله ﷻبه هغوی ته خامخا اورول[1] په خلاف دمؤمن پوهه،پاك،عاقل عالم کتونکې پوهیدونکې سوچ کونکې،په حق او باطل کښې فرق کونکې،نیکی اخستل او بدی پریخودل، په دلیل او شبه کښې فرق کونکې اود باطل نه بچ کیدل اوحق منل.اوښانې دادواړه څنګه برابریدلې شي؟حیرانتیاده چه بیاهم په داسې دوو کسانوکښې فرق نه پیژنې. ارشاد دی ﴿لَا يَسْتَوِيٓ أَصْحَٰبُ ٱلنَّارِ وَأَصْحَٰبُ ٱلْجَنَّةِۚ أَصْحَٰبُ ٱلْجَنَّةِ هُمُ ٱلْفَآئِزُونَ﴾دوزخي اوجنتي برابر نه دی اوجنتي خو بالکل کامیاب دی.اوپه آیت کښې دی چه روند اوکتونکې برابرنه دی. تیارې او رنړاګانې برابر نه دی. سورې او نمر برابر نه دی. ژوندی او مړه برابر نه دی.الله ﷻ خو چه چاته غواړی اورولې شی او تاسو خو مړوته هم نه شې اورولې او ته خو صرف خبرورکونکې ئې. مونږ ته په حقه سره زیرې ورکونکې او ویرونکې جوړکړې لیګلې ئې.او په هر یو امت کښې ویرونکې پیدا شوې دی.([2])

| وَلَقَدْ | أَرْسَلْنَا | نُوحًا | إِلَىٰ قَوْمِهِۦٓ | إِنِّي | لَكُمْ | نَذِيرٌ | مُّبِينٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اوبیشکه لیږلی وو | مونږه | نوح | قوم دهغه ته | چې بیشکه زهٔ | ستاسو دپاره | ویرونکې یم | ښکاره |

او(هم دغه شان حالت وو چې) مونږ حضرت نوح خپل قوم ته اولیږلو(هغه اووئیل چې) زهٔ تاسو لره (د الله د

| أَن لَّا تَعْبُدُوٓاْ | إِلَّا | ٱللَّهَۖ | إِنِّيٓ | أَخَافُ | عَلَيْكُمْ | عَذَابَ | يَوْمٍ | أَلِيمٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| چې مهٔ کوئ عبادت | مګر | د الله | ابیشکه زهٔ | ویریږم | په تاسو باندې | د عذابه | دورځې | دردناکې نه |

نافرمانئ نه) ښکاره ویرونکې یم (اودا ئې وئیل)تاسو دالله نه سوادبل چا عبادت مهٔکوئ(ماسره ویره ده چې تاسو

| فَقَالَ | ٱلْمَلَأُ ٱلَّذِينَ | كَفَرُواْ | مِن قَوْمِهِۦ | مَا نَرَىٰكَ | إِلَّا |
|---|---|---|---|---|---|
| نواووئیل | هغه سردارانو | چې کافران وو | دقوم دهغه نه | نهٔ وینومونږه تالره | مګر |

باندې به یو ورځ دردناك عذاب راشي(نودهغه دقوم سردارانو جواب ورکړو) چې مونږ ته خو تهٔ د خان په شان یو

| بَشَرًا | مِّثْلَنَا | وَمَا نَرَىٰكَ | ٱتَّبَعَكَ | إِلَّا | ٱلَّذِينَ | هُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| یو انسان | پشان زمونږ | اونهٔ وینو مونږ تالره | چې تابعداری کړی ده ستا | مګر | هغه کسانو | چې هغوئ |

انسان ښکارې او مونږ خو بس دا ګورو چې ستاسو په تعلیم هغه څوک عمل کوی اچې په مونږ کښې

[1] ۸/الانفال:۲۳.
[2] ۳۵/فاطر:۱۹، ۲٤.

| بَلْ | مِنْ فَضْلٍ | عَلَيْنَا | لَكُمْ | وَمَا نَرٰى | بَادِيَ الرَّأْيِ | أَرَاذِلُنَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بلکه | څه بهترې | په مونږ باندې | تاسو لره | او نه وينو مونږ | په ظاهرى رائې سره | رذيلان زمونږ دي |
| غورزيدلي خلق دي چې دسر سرى عقل خاوندان دي او مونږ په تاسو کښې هيڅ خبره هم (دخان نه) زياتې نه وينو | | | | | | |

| كٰذِبِيْنَ | نَظُنُّكُمْ |
|---|---|
| دروغژنو | گمان کوؤ مونږ په تاسو |
| بلکه گمان کوؤ چې تاسو دروغژن يئ | |

قوله تعالى: وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِ

**د ټولونه اول نبي نوح ﷺ دتوحيد دعوت ورکړو:**-د ټولونه اول د کافرانو طرف ته رسول جوړونکي اوبت پرستنې نه منع کولودپاره حضرت نوح ﷺ زمکې ته ليګلې شوې وو. هغوى خپل قوم ته اوفرمائيل چه زه تاسو له د الله ﷻ د عذاب نه ويرولو د پاره راغلې يم، که تاسو د غيرالله عبادت نه پريږدئ نو په عذابونوکښې به اونخلئ ګورئ تاسو صرف هم د يو الله ﷻ عبادت کوئ. که تاسو خلاف ورزى اوکړه نو د قيامت په ورځ باندې د دردناك اوسختوعذابونونه زه په تاسو ويريږم

**د قوم نوح د قوم جواب:**په دې باندې طاقتورو کافرانو اورئيسانو اواميرانو اوونيل چه ته خو څه فرښته نه ئې زمونږ په شان انسان ئې نو بيا څنګه ممکن ده چه مونږ ټول ئې پريخودواو هم يوکس ته وحى راغله.اومونږپخپلو سترګو باندې وينوچه داسې خوارقسم خلق ستاپحلقه کښې شامل دى څوك شريف اورئيس ستافرمان بردار نه شو. اودا خلق بغير د سوچ اوفکر ستامجلس کښې راغله کيناستل. بيا مونږ داهم ګورو چه ستا دې نوى دين تاته هيڅ فائده اونه رسوله چه ته مالدار شوې ئې ستا رزق زيات شوې وى يا په (خَلق وخُلق)کښې تاته په مونږ باندې څه اوچتوالې حاصل شوې وى. بلکه زمونږ په خيال کښې خو ته د ټولونه وروکې او په صلاحيت او عبادت باندې چه مونږ ته کومې وعدې د آخرت د کور راکوې زمونږ په نيز خودا ټولې دروغ خبرې دى.

**دجوسې اعتبارنه دبنده نيت ته کتل پکار دى:**ددې کافرانودابې طريقې خبرې اوګوره که دحق قبلونکى د لاندې طبقې خلق وى نوولې دې سره دهغوى د حق شان کم شو حق خو هم حق دې که د هغې منونکى واړه خلق وى که لوئ بلکه حق خبره دا ده چه دحق منونکې هم شريفان خلق دى سره د دې که هغوى غريبانان اومسکينان وى. اود حق نه مخ اړونکى ذليل اورذيل خلق دى سره د دې که هغوى غنيان او مالداران اواميران وى. اودا حقيقت دې چه د رښتياؤ آواز د ټولونه اول هم غريبانان مسکينان خلق قبلوى او اميران او کبيران خلق هسې سپيرمې وريځې پرسوى.د قرآن پاك فرمان دې چه تانه وړاندې په کومه کومه کوځه اوکلى کښې زمونږانبياء راغله نود هغه ځائ لويو خلقو هم دغه اوونيل چه مونږ خپل پلار نيکونه په کوم دين بياموندې دى مونږ خو به هم هغه اختياروو. ([1])

**د نبي ﷺ ملګرى هم غريبانان خلق وو:**:د روم بادشاه هرقل چه کله د ابوسفيان نه تپوس کړې وو چه شريفانوخلقو دهغه تابعدارى کړې که ضعيفانوخلقو؟ نو هغه هم دا جواب ورکړې وو چه ضعيفانو خلقو. نوپه دې باندې هرقل ونيلې وو چه د رسولانوتابعدارى هم دغه خلق کوى.([2]) د حق په زرقبولولو کښې څه عيب نشته. د حق د وضاحت نه پس د رائې فکر څه ضرورت دې؟ بلکه د هر يوعقل مندکار هم دغه دې چه د حق په منلوکښې تندى اووړانديوالې اوکړى. په دې کښې تامل کول جهالت او کم

---

[1] ٤٣/الزخرف:٢٣.

[2] صحيح بخاری کتاب بدء الخلق باب كيف كان بدء الوحي الى رسول الله :٧، صحيح مسلم:١٧٧٣.

عقل توب دي.دالله ﷻ ټول پیغمبران علیهم السلام ډیر واضحه صفااوښکاره دلیلونه راوړلو سره راغي. په حدیث شریف کښې دی چه ما څوک هم د اسلام طرف ته رابللي دي په هغوی کښې څه نه څه تردد والي کړي بغیرد ابوبکرصدیق رضی الله عنه نه چه هغه هیڅ تردد اوتامل نه دي کړي واضح څیز لیدلو بندي بغیرد څه ملامتیانه ئې زر قبول کړو.دهغوی دریم اعتراض چه مونږ په تاکښې څه اوچتوالي نه وینو او داهم دهغوی د ړوندوالي په وجه دې که د هغوی سترګې او غوږونه وی اود موجود څیزنه انکار اوکړي نو په حقیقت کښې د هغې نشت والي نه شي ثابتیدې. دوی خو نه حق ته ګوری اونه حق اوری بلکه په خپل شك کښې غوپې وهي. په خپل جهالت کښې لامبوګانې وهي. دروغژن د خان نه خبرې کونکي او خالي لاس او رذیلان او نقصانیان دی.

| | | | |
|---|---|---|---|
| قَالَ | يٰقَوْمِ | اَرَءَيْتُمْ | اِنْ كُنْتُ |
| اوونیل نوح | اې قومه زما | تاسو خو اوګورئ | که یم زه |
| هغه ورته اوونیل چې ائي زما قومه دا خو اوښائي چې | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| عَلٰى بَيِّنَةٍ | مِّنْ رَّبِّيْ | وَاٰتٰىنِيْ | رَحْمَةً | مِّنْ عِنْدِهٖ | فَعُمِّيَتْ | |
| په ښکاره دلیل باندې | دطرفه درب خپل نه | او راکړې وی هغه ماته | رحمت | د طرفه خپل نه | بیا (دهغې حقیقت) پټ کړې شو | |
| زه دخپل پروردګار د طرفنه په یو ښکاره دلیل ولاړ یم او هغه په ما باندې خپل رحمت کړې وی | | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَلَيْكُمْ | اَنُلْزِمُكُمُوْهَا | وَاَنْتُمْ | لَهَا | كٰرِهُوْنَ ۝ |
| په تاسو باندې | ایا مونږ تاسو پورې پیوسته کړو هغه رحمت | حال دا چې تاسو | هغه | نه خوښونکی یئ |
| خو هغه (رحمت) تاسو ته نه ښکاری انوګنی مونږ ئې په زور درپورې انخلوؤ حال داچې تاسو ترې نفرت کوئ | | | | |

قوله تعالى: اَنُلْزِمُكُمُوْهَا وَاَنْتُمْ لَهَا كٰرِهُوْنَ ۝

**په زور سره یوکار نه کیږی:**-حضرت نوح علیه السلام خپل قوم ته جواب ورکړو چه رښتونې نبوت یقیني او واضحه څیز ماله زما درب د طرف نه راغلې دې. الله ﷻ ماته ډیر رحمت اونعمت راکړې دی.هغه تاسو نه پټ پاتې شو تاسوهغه اونه لیدې شو. نه تاسو د هغې قدراوکړو اونه موهغه اوپیژندلو بلکه بغیر د سوچ او پوهې تاسو هغې له دیکې ورکړې اوتکذیب مو اوکړو.اوس اوښائي چه ستاسو ددې ناخوښئ په حالت کښې زه څنګه داسې اوکړې شم چه تاسودهغې ماتحت جوړکړم.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَيٰقَوْمِ | لَآ اَسْئَلُكُمْ | عَلَيْهِ | مَالًا | اِنْ اَجْرِيَ | اِلَّا | عَلَى اللّٰهِ |
| ائي زما قومه | نه غوارم زه ستاسو نه | په دې دعوت باندې | څه مال | نه دې اجر زما | مګر | په الله باندې |
| او ائي زما قومه زه په دې (تبلیغ باندې) ستاسو نه هیڅ مال نه غوارم زما بدله خو الله | | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَمَآ اَنَا | بِطَارِدِ | الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | اِنَّهُمْ | مُّلٰقُوْا |
| اونه یم زه | شړونکې | د هغه کسانو | چې ایمان ئې راوړې دي | ابیشکه هغوئ | ملاقات کونکي دي |
| سره ده او زه (ستاسو د وجې) مسلمانان شړلې نشم هغوئ به پخپله خپل پروردګار سره ملاقات کوي | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| رَبِّهِمْ | وَلٰكِنِّيْٓ | اَرٰىكُمْ | قَوْمًا | تَجْهَلُوْنَ ۝ | وَيٰقَوْمِ | مَنْ يَّنْصُرُنِيْ |
| درب خپل سره | لیکن زه | وینم تاسو | داسي قوم | چې جهالت کوئ | او ائي زما قومه | څوك به مدد اوکړي زما |
| بلکه زه خو داګورم چې تاسو په جهالت کښې پراته یئ ائي زما قومه څوک به د الله په مقابله کښې | | | | | | |

| تَذَكَّرُوْنَ۝ | اَفَلَا | اِنْ طَرَدْتُّهُمْ | مِنَ اللهِ |
|---|---|---|---|
| نصیحت نهٔ قبلوئ | آیا نو تاسو | که اوشړم زهٔ هغوئ | به مقابله دالله کنبې |
| زما مدد اوکړی که زه دوئ اوشړم نو ګنی تاسو په دومره قدرې خبره هم نهٔ پوهیږئ | | | |

قوله تعالى: وَمَآ اَنَا بِطَارِدِ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا

الله ﷻ یادونکی د مجلس نه مه اوباسه:-هغه خپل قوم ته فرمانی چه زه تاسوته څه نصیحت کوم او ستاسو څومره خیرغواړم نوزه تاسونه د دې څه بدله خو نه غواړم؟ زما اجرت خود الله ﷻ په ذمه دې. دا تاسوچه ماته څه وائې چه دې غریبانانو ایماندارانو له دیکې ورکړه،مانه خو به دا چرې هم اونه شی. هم دغه غوښتنه دحضور ﷺ نه هم شوې وه د هغې په جواب کنبې دا آیت نازل شو(وَلَا تَطْرُدِ الَّذِیْنَ یَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِیِّ)یعنی سحرماښام خپل رب یادونکی دخپل مجلس نه مه اوباسه.بل آیت کنبې دی (وَكَذٰلِكَ فَتَنَّا بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ)همدغه شان مونږ یو په بل باندې ازمینیت کړو هغوی اووئیل چه آیا دا هم هغه خلق دی کوم چه مونږ پریخودې وواودالله ﷻ فضل پرې نازل شو ولې الله ﷻ شکر کونکی نه پیژنی؟

| وَلَآ | الْغَیْبَ | اَعْلَمُ | وَلَآ | خَزَآىِٕنُ اللهِ | لَكُمْ عِنْدِیْ | وَلَآ اَقُوْلُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اونهٔ | په غیبو باندې | چې زهٔ پوهیږم | اونهٔ وایم دا | خزانې د الله دی | تاسو ته چې زماسره | اونهٔ وایم زهٔ |
| او نهٔ دا دعوی لرم | | او نهٔ دا وایم چې دغیبو علم لرم | | او زهٔ تاسوته دانهٔ وایم چې ما سره دالله ﷻ خزانې دی | | |

| اَعْیُنُكُمْ | تَزْدَرِیْٓ | لِلَّذِیْنَ | وَّلَآ اَقُوْلُ | اِنِّیْ مَلَكٌ | اَقُوْلُ |
|---|---|---|---|---|---|
| سترګې ستاسو | چې سپک ګوری ورته | په باره دهغه کسانو کنبې | اونهٔ دا وایم زهٔ | چې بیشکه زهٔ فرښته یم | وایم زهٔ |
| چې زهٔ فرښته یم اونهٔ د هغې کسانو باره کنبې چې ستاسو په نظر کنبې حقیر رازی دا وایم | | | | | |

| فِیْٓ اَنْفُسِهِمْ | بِمَا | اَللهُ اَعْلَمُ | خَیْرًا | اللهُ | لَنْ یُّؤْتِیَهُمُ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې په نفسونو دهغوئ کنبې دی | په هغه حال | الله ښهٔ پوهیږی | څه خیر | الله | چې هرګز به ورنکړی هغوئ ته |
| که زهٔ داسې | | الله ﷻ دهغوئ د زړونو په حال ښهٔ خبر دې | | | چې الله ﷻ به ورله هیڅ خیر نهٔ ورکوی |

| لَّمِنَ الظّٰلِمِیْنَ۝ | اِذًا | اِنِّیْٓ |
|---|---|---|
| د ظالمانو نه | په دغه وخت کنبې به شم | بیشکه زهٔ |
| اووایم نو په ظالمانو کنبې به شمیر شم | | |

**په دعوت ورکولو د لالچ طمع نه کول:-** هغوی فرمانی چه زه صرف رسول الله یم. د الله ﷻ وحده لاشریک له دعبادت اوتوحیدطرفته دهغه دحکم مطابق تاسو ټول رابلم. د دې نه زما مراد تاسو نه مال راغونډول نه دی. د هر یو لوئی او وړوکی دپاره زما دعوت عام دې چه څوك نی قبول کړی خلاصې به بیامومی. د الله ﷻ په خزانوکنبې اخوادیخوا کول زما په قدرت کنبې نه دی. په غیب نه پوهیږم اوچه کومه خبره الله ﷻ ماته راوښائی نو راته معلومه وی. زه د فرښتې کیدو دعویدار نه یم. بلکه یوانسان یم اوزما تائیدد الله ﷻ دطرفنه په معجزو سره کیږی زه خود هغې قائل نه یم چه دې الله ﷻ سره به د نیکو بدله نه ملاویږی.دهغه د باطن حال هم ماته معلوم نه دې هم الله ﷻ ته د هغې علم دې. که دظاهرپه شان په باطن کنبې هم ایماندار وی نو هغه ته به د الله ﷻ د طرف نه خامخا نیکنی ملاویږی څوك چه د هغه د انجام د خرابوالی وائی هغه ظلم اوکړواود جهالت خبره نی اوکړه.

| قَالُوْا | يٰنُوْحُ |
|---|---|
| اوونيل هغوئ | ائي نوح |
| اخر كنبي) هغوئ ورته اوونيل چې ائي نوح ﷺ | |

| قَدْ جٰدَلْتَنَا | فَاَكْثَرْتَ | جِدَالَنَا | فَأْتِنَا | بِمَا |
|---|---|---|---|---|
| بيشكه جگړه اوکړه تا زمونږ سره | نوډيره دې کړه | جگړه مونږ سره | نو راوړه مونږ ته | هغه عذاب |
| تامونږ سره بحث اوکړو | او ډير زيات بحث دې اوکړو | اوس بس هغه څيز راوله دکوم نه چې مونږ | | |

| تَعِدُنَآ | اِنْ كُنْتَ | مِنَ الصّٰدِقِيْنَ۝ | قَالَ | اِنَّمَا |
|---|---|---|---|---|
| چې وعده نې کوې ته زمونږ سره | که نې ته | د رښتونو نه | اوونيل نوح | بيشکه |
| ويروې .............. که ته رښتوني يې (حضرت نوح ﷺ ورته) اوونيل بيشکه | | | | |

| يَأْتِيْكُمْ | بِهِ | اللّٰهُ | اِنْ شَآءَ | وَمَآ اَنْتُمْ | بِمُعْجِزِيْنَ۝ | وَلَا يَنْفَعُكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| رابه ولې تاسو ته | هغه | الله | که اوغواړي | اونه يئ تاسو | عاجزه کونکي الله لره | اونه درکوي فائده تاسو ته |
| چې هغه خو به الله ﷻ پخپله راولی که هغه اوغواړي | اوتاسو هغه عاجزه کولې نشئ | اوزما خير خواهي | | | | |

| نُصْحِيْٓ | اِنْ اَرَدْتُّ | اَنْ اَنْصَحَ | لَكُمْ | اِنْ كَانَ اللّٰهُ يُرِيْدُ |
|---|---|---|---|---|
| نصيحت زما | که اراده اوکړم زۀ | چې نصيحت اوکړم زۀ | تاسوته | که چرې اوغواړي الله |
| به تاسو ته هيڅ فائده درنکړي | اگر که زۀ ستاسو ډير خير اوغواړم | هرکله چې الله ﷻ ته | | |

| اَنْ يُّغْوِيَكُمْ ط | هُوَ | رَبُّكُمْ قف | وَاِلَيْهِ | تُرْجَعُوْنَ۝ ط |
|---|---|---|---|---|
| چې بې لارې کړي تاسو | هغه | رب ستاسو دې | اوخاص هغه ته | به واپس کولې شئ |
| ستاسو گمراهي منظوره وي | هغه ستاسو پروردگار دې | او هم هغه ته به تاسو ټول واپس کيږئ | | |

**قوله تعالیٰ:: قَالُوْا يٰنُوْحُ قَدْ جٰدَلْتَنَا**

**دنوح ﷺ د قوم تندي:-** د نوح ﷺ د قوم تندی بيانولې شی چه د عذاب غوښتلو د پاره ئی ونيل چه حجتونه خو مونږ ډير واوريدل، آخری فيصله زمونږ دا ده چه مونږ خو به ستا تابعداری نه کوو اوس که ته رښتونې ئی نو دعا اوکړه په مونږ باندې عذاب راوله. هغه جواب ورکړو چه داهم زما د وس کار نه دې د الله ﷻ په لاس کښې دی او هغه څوک عاجزکولې نه شی.که د الله ﷻ اراده هم ستاسو د گمراهئ او بربادئ ده نو بيا واقعی زما نصحيت کول عبث دی. د ټولومالك هم الله ﷻ دې اود ټولوكارونو پوره والې هم د هغه د قدرت په لاس کښې دې. متصرف حاکم عادل ظلم نه کونکې د حکم امر مالك، د اول نه پيداکونکې بيا راواپس کونکې اود دنيا او آخرت يوازې مالك هم هغه دې او د ټول مخلوق هم د هغه طرف ته واپس کيدل دی.

| اَمْ يَقُوْلُوْنَ | افْتَرٰىهُ ط | قُلْ | اِنِ افْتَرَيْتُهٗ |
|---|---|---|---|
| آيا وائی دوئ | چې دخان نه ئې جوړ کړې دې دا قرآن | ورته اووايه | که دخانه جوړ کړې وی مادا قرآن |
| آيا دوئ وائی چې دۀ دا (قرآن پاک) په دروغه جوړ کړې دې | ورته اووايه که ما دخانه جوړ کړې وی | | |

| فَعَلَيَّ | إِجْرَامِيْ | وَأَنَا | بَرِيْٓءٌ | مِّمَّا | تُجْرِمُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| نو په ما دي | جرم زما | او زه | خلاص يم | د دهغې نه | چې كوم جرمونه تاسو كوئ |
| نو ددې گناه په ما ده ..................... اوكوم گناهونه چې تاسو كوئ انو زه دهغې نه بيزاره يم | | | | | |

قوله تعالى: أَمْ يَقُولُونَ افْتَرٰهُ

**دمشركين مكه الزام او دهغه جواب**:-دا په مينځ كښې كلام د دې قصې په مينځ كښې د دې د تائيد او تقرير د پاره دى. الله ﷻ خپل آخرى رسول ﷺ ته فرمائى چه دا كافران د دې قرآن باره كښې د خپل ځان نه د جوړولو الزام لگوى نو جواب وركړه كه داسې وى نو زما گناه په ما باندې ده زه پوهيږم چه د الله ﷻ عذاب څنگه دى؟ بيا څنگه ممكن ده چه زه په الله ﷻ باندې دروغ اود ځان نه خبره جوړه كړم اودا خبره ده چه تاسو د خپلې گناه پخپله ذمه وار ئې.

| وَاُوْحِيَ | إِلٰى نُوْحٍ | أَنَّهٗ | لَنْ يُّؤْمِنَ | مِنْ قَوْمِكَ |
|---|---|---|---|---|
| او وحى اوكړې شوه | نوح ته | چې بيشكه | هرگز به ايمان رانوړى نور خوك | د قوم ستانه |
| او حضرت نوح ﷺ ته وحى كړې شوې وه | چې ستا په قوم كښې چې چا ايمان راوړې دې | | | |

| إِلَّا مَنْ | قَدْ اٰمَنَ | فَلَا تَبْتَئِسْ | بِمَا كَانُوْا يَفْعَلُوْنَ |
|---|---|---|---|
| مگر هغه خوك | چې ايمان ئې راوړې دې | نوته مه غمژن كيږه | په وجه د هغه كارونو چې دوى ئې كوى |
| هغه راوړو | اوس په كښې بل هيڅوک ايمان نهٔ راوړى | نو ته ددوئ په كارونو هيڅ غم مه كوه | |

| وَاصْنَعِ | الْفُلْكَ | بِأَعْيُنِنَا | وَوَحْيِنَا | وَلَا تُخَاطِبْنِيْ |
|---|---|---|---|---|
| او جوړه كړه | بيړئ | په نگرانئ زمونږ كښې | اومطابق دوحى زمونږ | اومهٔ كوه خبرې زما سره |
| اوزمونږ په نگرانئ كښې كشتئ جوړه كړه | اوزمونږ په حكم ئې جوړه كړه | اوماسره د ظالمانو په | | |

| فِي الَّذِيْنَ | ظَلَمُوْا | إِنَّهُمْ | مُّغْرَقُوْنَ | وَيَصْنَعُ |
|---|---|---|---|---|
| په حق دهغه كسانو كښې | چې ظلم ئې كړې دې | بيشكه دوئ | ډوبيدونكى دى | او جوړوله هغه |
| باره كښې خبره مهٔ كوه ........دوئ به خواه مخواه ډوبيږى | اوهغه به بيړئ جوړوله | اوهر كله چې دقوم | | |

| الْفُلْكَ | وَكُلَّمَا | مَرَّ | عَلَيْهِ | مَلَأٌ | مِّنْ قَوْمِهٖ | سَخِرُوْا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بيړئ | او هر كله چې به | تيريدل | په هغه باندې | سرداران | دقوم دهغه نه | نو توقې به ئې كولې |
| سرداران به ئې په خوا كښې تيريدل | نو توقې به ئې ورپورې كولې | هغه به ورته اووئيل | | | | |

| مِنْهُ | قَالَ | إِنْ تَسْخَرُوْا | مِنَّا | فَإِنَّا | نَسْخَرُ | مِنْكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په هغه پورې | اووئيل نوح | كه تاسو توقې كوئ | په مونږ پورې | انو مونږه به | توقې اوكړو | په تاسو پورې |
| كه تاسو مونږ پورې توقې كوئ | نو مونږ به تاسو پورې توقې اوكړو | لكه چې تاسو | | | | |

| كَمَا | تَسْخَرُوْنَ | فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ | مَنْ | يَّأْتِيْهِ | عَذَابٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| لكه څنگه چې | تاسو توقې كوئ | نو زر به معلوم شى تاسو ته | هغه څوك | چې رابشى هغه ته | عذاب |
| په مونږ پورې توقې كوئ | ډير زر به درته معلومه شى چې په چا باندې شرمونكې عذاب رازى | | | | |

| يُخْزِيْهِ | وَيَحِلُّ | عَلَيْهِ | عَذَابٌ | مُّقِيْمٌ |
|---|---|---|---|---|
| چې رسوا به کړي هغه | او نازليږي | په هغه باندې | عذاب | هميشه |

او په چاباندې دهميش عذاب نازليږي

قوله تعالى:: وَكُلَّمَا مَرَّ عَلَيْهِ مَلَأٌ مِّنْ قَوْمِهِ سَخِرُوْا مِنْهُ

د نوح ﷺ کشتئ تيارول اود کافرانوپيغورکول:- د نوح ﷺ قوم چه کله دعذاب دراتلوجوګه شو نو نوح ﷺ دعا اوکړه چه يا الله په مخ د زمکه دکافرانويوکور هم مه پريږده.([1]) پروردګارا زه عاجز شوم ته زما امداد اوکړې([2]) هغه وخت وحی راغله چه کومو ايمان راوړلي دي دهغوی نه علاوه به اوس څوک ايمان نه راوړي،ته په دوی باندې افسوس مه کوه اونه د هغوی څه خاص خيال کوه. زمونږ په کتوکښې زمونږ دتعليم مطابق يوه کشتئ تياره کړه اواوس دظالمانو باره کښې مونږ سره څه خبرې مه کوه. مونږ د دوی دوبول مقرر کړی دی.

د نوح ﷺ دکشتئ کيفيت::بعضې سلفو وئيلي دی چه حکم اوشو چه لرګی پرې کړه اوچ ئی کړه تختې جوړې کړه په دې کښې سل کاله تيرشو او بيا په پوره تياری کښې سل کاله نور اووتل، يوقول دې څلويښت کاله اولګيدل. والله اعلم. امام محمد بن اسحاق د تورات نه نقل کوی چه د ساګ د لرګی نه دا کشتئ تياره کړې شوه. د دې اوږدوالي اتيا(۸۰) لاسه وو او ژوروالي پنځوس (۵۰) لاسه وو. دننه او بهر روغن کړې شوې وه. د اوبو لرې کولو پرزې هم وې. د قتاده رحمه الله قول دې چه اوږوالي درې (۳۰۰) لاسه وو.د ابن عباس رضی الله عنه فرمان دې چه اوږدوالي دولس سوه لاسه (۱۲۰۰) او پلنوالي شپږ سوه (۶۰۰) لاسه وو.وئيلې شی چه اوږدوالي ۲۰۰۰ لاسه وو او پلنوالي ۱۰۰ لاسه وو. والله اعلم. دننه ژوروالي دير(۳۰) لاسه وو. په دې کښې درې درجې وې او هره درجه لس لاسه اوچته وه. د ټولو نه لاندې درجه کښې څاروی او ځنګلی ځناور وو. په مينځ والا حصه کښې انسانان وو. په پورتنئ حصه کښې مرغان وو. د دې دروازې چوړ په دې کښې وو د پاسه بنده وه.

يو عجيبه واقعه::ابن جرير رحمه الله يوغريب اثرحضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه نه ذکر کړې دې چه حواريانو دحضرت عيسی بن مريم ﷺ ته درخواست اوکړو که ته د الله ﷻ په حکم يوداسې مړې راژوندې کړې چا چه د نوح ﷺ کشتئ ليدلې وی نو مونږ به د هغوی نه معلومات حاصل کړې وو. هغه دوی سره يوې غونډئی ته لاړل او يوموټې خاوره ئی راوچته کړه او وې فرمائيل پيژنئ دا څوک دې؟ هغوی ونيل چه الله ﷻ اود هغه رسول ته معلومه ده. هغه اوفرمائيل چه دا د حام بن نوح پنډئی ده. بيا هغه خپله همسا په دې غونډ ئی باندې اووهله وئی فرمائيل دالله ﷻ په حکم پاسه اودريږه.هم هغه وخت يو بوډاشان سړې دسرنه خاوره اخواکوله پاسيدو اودريدو.هغه تپوس اوکړو چه ته په بوډاوالی کښې مړ شوې وې؟ هغه ونيل چه نه مړشوې خو زه په ځوانئی کښې ووم خواوس مې په زړه کښې دا ويره کيناسته چه قيامت قايم شو نو هغې راته بوډا جوړ کړو. هغه تپوس اوکړو چه ښه ده د حضرت نوح ﷺ د کشتئ باره کښې څه معلومات راکړه. هغه ونيل چه دولس سوه لاسه اوږده وه او شپږ سوه لاسه پلنه وه. د دريو چتووه په يوکښې څاروی او ځناور، په دويم کښې انسانان او په دريم کښې مرغان. کله چه د ځناورو سوتې خورې شوې نو الله ﷻ حضرت نوح ﷺ ته وحی راوليګله چه د هاتهی لکئی اوخوزوه. د هغه په خوزولوسره د هغې نه د خنزير نر اوښځه راووتل او جوړه شو. مږو چه کله د هغوی تختې رژول

[1] ۷۱/نوح: ۲۶.
[2] ۵٤/القمر: ۱۰.

شروع کړه نو حکم اوشو چه د زمری په تندی باندي ګوته اولګوه. د هغې نه د پیشوګانو جوړه راووتله او په مږو نې حمله اوکړه. حضرت عیسی ﷺ سوال اوکړو چه حضرت نوح ﷺ ته په اوبو د ښارونو د غرقیدو علم څنګه اوشو؟ هغه فرمائی چه هغه کارغه د خبر راوړلو د پاره اولیګلو خو هغه په یو لاش باندې ناست وو او تر ډیر ساعت پورې رانغلو. هغه د ده د پاره د همیشه ویریدلو بد دعا اوکړه، په دې وجه هغه په کورونوکښې نه اوسیږی. بیا هغه کونتره اولیګله نو هغې په خپله خُله کښې د زیتون پانړه راوړه او پخپلو پنجوکښې اوچه خاوره راوړه. په دې سره معلومه شوه چه ښارونه ډوب شوی دی. هغه د دې په غاړه کښې دخصره یوزنخیرواچولواودهغې دپاره نی دامن اوانس دعا اوکړه نو هغه په کورونو کښې اوسیږی.حواریانو اووئیل اې رسول الله! هغه زمونږ سره بوځه چه مونږ سره کینی او مونږ ته نورې خبرې هم اوکړی. هغه اوفرمائیل دې تاسو سره څنګه تلې شی چه د ده رزق نشته. بیانې اوفرمائیل چه د الله ﷻ په حکم څنګه وې هغه شان شه. هغه هم هغه وخت خاورې شو. نوح ﷺ به کشتنی جوړوله او دې د کافرانوته په لاس یوه تیوقه مسخره ورغله. هغوی به په تلوراتلوکښې دا چیړله او خبرې به نی کولې او پیغورونه به نی کول څکه چه دا ورته دروغ ښکاریدل. اود عذاب په وعده د هغوی یقین نه وو. ددې په جواب کښې حضرت نوح ﷺ فرمائی چه ښه ده زړه خوشحاله کړه وخت راروان دې چه د دې به پوره بدله اخستل غواړی. اوس خان پوهه کړنی چه د الله ﷻ عذاب نی څنګه په دنیاکښې رسواکوی او په چاباندې اخروی عذاب راځی چه هیڅ کله به نی روستونه کړې شی.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| حَتّٰى | اِذَا جَآءَ | | | | | |
| | ترديٖ پورې | کله چې راغی | | | | |
| | (دا خبرې کیدې) تر دې چې زمونږ حکم | | | | | |
| اَمْرُنَا | وَفَارَ | التَّنُّوْرُ ۙ | قُلْنَا | احْمِلْ | فِيْهَا | مِنْ كُلٍّ |
| حکم زمونږ | او راوخوټکیدو | تنور | نو اووئیل مونږه | سوارۀ کړه | په دې کښې | د هر قسم خناور نه |
| | راغلو | او د زمکې نه اوبه راووتلې | نو مونږ ورته اووئیل چې په دې کښې د هر قسم څناورو نه | | | |
| زَوْجَيْنِ | اثْنَيْنِ | وَاَهْلَكَ | اِلَّا | مَنْ | سَبَقَ | |
| جوړې (نر او ماده) | دوه | او د کور خلق خپل | مګر (مۀ سوروه) | هغه څوك | چې وړاندې تیره شوی ده | |
| | یو یو جوړه یعنی دوه دوه | او خیژوه | او د خپل کور خلق هم مګر (هغه نه) د چا په حقله چې فیصله شوې | | | |
| عَلَيْهِ | الْقَوْلُ | وَمَنْ | اٰمَنَ ؕ | وَمَآ اٰمَنَ | مَعَهٗٓ | |
| په هغه باندې | خبره | او سواره کړه هغه څوك | چې ایمان نې راوړې دې | او نۀ وو راوړې ایمان | د هغه سره | |
| | ده | او نور مسلمانان (هم په کښې کښینوه) | او هغه سره ډیرو لږ وکسانو ایمان راوړې وو ............ | | | |
| اِلَّا | قَلِيْلٌ ۞ | | | | | |
| مګر | لږو خلقو | | | | | |

قوله تعالی:: مِنْ كُلٍّ زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ

په کشتئی کښې دهرڅناور جوړه موجوده:-د الله ﷻ د فرمان مطابق د آسمان نه یوتیزباران راشروع شو.اودزمکې نه هم اوبه راوخوټکیدې تولہ زمکه د اوبونه ډکه شوه.او چه ترکوم ځاۍ الله ﷻ ته منظور

وه تر هغه ځای اوبه اورسيدلې.حضرت نوح الله ﷺ دوراندې په خپله تلونكې كشتئى باندې سور كړو اوكافران ئې د هغوی انجام ته اورسول. (١).

**د تنور نه څه مراد دي؟:** د تنوردراخوټكيدو نه مراد د ابن عباس په قول چه دمخ دزمكې نه چينې راوخوټكيدې (٢) تردې چه دأور په ځای په تنوركښې اوبه راووتلې هم دغه قول د جمهور سلفو او خلفو دې.دحضرت علي ﷺ نه روايت دې چه دتنور نه مراد سحر روښنانه كيدل دی يعنی د سحر رڼړا اود فجر پرقيدل. خوډير ښكاره قول اولنې دې. مجاهد او شعبی ﷺ وائی چه داتنور په كوفه كښې وو د ابن عباس ﷺ نه روايت دې چه په هند كښې يونهر دې. قتاده ﷺ وائی چه په جزيره كښې يونهر دې كوم ته چه عين الورده وائی خودا ټول اقوال غريب دی.

**په كشتئ كښې څه څه سوارۀ كړې شوی وو؟:** غرض داچه دا علامې ښكاره كيدو باندې الله ﷺ نوح ﷺ ته حكم اوكړو چه خپل ځان سره په كشتئى كښې د هريو څيز نه اوهرقسم مخلوق نه يوه يوه جوړه نراو ښځه سواره كړه. ونيلې شی چه د غيرجاندار د پاره هم دغه حكم وو لكه بوټی.ونيلې شی چه په مرغوكښې دټولونه اول دره يعنی طوطی كشتئ كښې سور شو اود ټولونه روستو خر سورشو. ابليس د هغه لكئی پورې اونختلو كله چه د هغه دوه وراندينئی پښې كشتئى كښې راغلې او هغه خپله روستونيی حصه كشتئى راوچتول غوښتل نو اوچت نه شوخكه چه په لكئی باندې د هغه ملعون بوج وو. حضرت نوح ﷺ تندی كوله ده تيريدل غوښتل خو روستونئی پښې نه شوې اوچتولې. آخر نوح ﷺ اوونيل كه تاسره ابليس هم وی نوراشه نوهغه وراوختلو او ابليس هم ورسره لاړو.

بعضو سلفوونيلی دې چه د زمری اوړل لګ شان ګران شو آخر په هغه باندې تبه راغله نو هغه سوركړې شو.د ابن ابی حاتم ﷺ په حديث كښې دی رسول الله ﷺ فرمائی چه كله حضرت نوح ﷺ ټول ځاروی كشتئى كښې داخل كړل نو خلقو ونيل چه د زمری په موجودګئی كښې به دا ځناور څنګه په آرام پاتې شی. نو الله ﷺ په هغه باندې تبه راوستله دې نه وراندې په زمكه باندې دا بيماری نه وه.بيا خلقو د مږې شكايت اوكړوچه داخو زمونږ خوراك او نورټول څيزونه خرابوی.د الله ﷺ په حكم سره د زمری د انتروشی نه يوه پيشو راووتله په هغې سره مږې غلې شوې او يوګوټ كښې كيناستلې(٣)

**په كشتئ كښې د سورو انسانانو تعداد څومره وو؟:** حضرت نوح ﷺ ته حكم اوشو چه د كوروالا هم ځان سره په كشتئى كښې كينوه خو چه په هغوی‌كښې چاايمان نه دې راوړې نو هغوی مه پريږده. د نوح ﷺ ځوئ هم دې كافرانو سره جدا شو اود هغه بی‌بی هم چه د الله ﷺ د رسول منكره وه. هغه د خپل قوم ټول مسلمانان هم ځان سره كينول. خود دې مسلمانانو شميرډيركم وو(٤) ﴿ نهه نيم سوو كالود تبليغ سره په دومره اوږده موده كښې په هغه باندې ډيرو كمو خلقو ايمان راوړې وو. ابن عباس ﷺ فرمائی چه ټول اتيا (٨٠) كسان وو په هغې كښې ښځې هم وې. كعب ﷺ فرمائی دوه اويا(٧٢) كسان وو يوقول دې چه صرف لس كسان وو.يو قول دې چه حضرت نوح ﷺ وو اود هغه درې ځامن سام، حام، يافث اوڅلور ښځې چه درې په كښې هم د دې درېواړو ښځې او څلورمه د حام بی بی وه. او ونيلی شوی دی چه د حضرت نوح ﷺ بی بی.خو په دې خبره كښې نظر دې.په ظاهره خوداسې ښكاری چه د حضرت نوح ﷺ بی بی په هلاكيدونكو كښې هلاكه شوه. ځكه چه هغه هم د خپل قوم په دين باندې وه. نو چه څنګه د حضرت لوط ﷺ بی بی د قوم سره هلاكه شوې وه دغه شان دا هم. والله اعلم.

---

١) ٥٤/القمر: ١١، ١٤.
٢) الطبری: ٣١٨/١٥.
٣) داروايت مرسل دې.
٤) الطبری: ٣٢٦/١٥.

وَقَالَ ارْكَبُوْا فِيْهَا بِسْمِ اللّٰهِ مَجْرٖىهَا

| او اووئيل نوح | سواره شئ | په دې کښې | په نوم دالله | روانيدل ددې

اوهغه اووئيل په دې کښې سواره شئ | دالله ﷻ په نوم ددې روانيدل او

وَمُرْسٰىهَا اِنَّ رَبِّيْ لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ۝ وَهِيَ تَجْرِيْ

او ودريدل ددې | بيشکه | رب زما | خامخا بښونکې دې | رحم کونکې دې | او هغه | روانه وه

او دريدل دې | بيشکه زما پروردګار بښونکې مهربان دې | او بيړئ هغوئ دغرونو په شان دنګو چپو

بِهِمْ فِيْ مَوْجٍ كَالْجِبَالِ ۟ وَنَادٰى نُوْحُ ابْنَهٗ وَكَانَ

چې هغوی په کښې وو | په داسې چپو کښې | چې وې پشان دغرونو | او آواز اوکړو | نوح | اخوی خپل ته | او وو هغه

کښې روان کړل | او حضرت نوح ﷺ خپل ځوئ ته آواز اوکړو | او هغه يو طرفته ولاړ وو | چې

فِيْ مَعْزِلٍ يّٰبُنَيَّ ارْكَبْ مَّعَنَا وَلَا تَكُنْ مَّعَ الْكٰفِرِيْنَ۝

په غاړه | اې زما خويه | سور شه | زمونږ سره | او مهٔ کيږه ته | دکافرانو سره

انې زما (خوږه) بچيه مونږ سره راسور شه ............| او کافرو سره مهٔ پاتې کيږه

قَالَ سَاٰوِيْٓ اِلٰى جَبَلٍ يَّعْصِمُنِيْ مِنَ الْمَآءِ ۭ قَالَ

اووئيل هغه | زهٔ به پناه اونيسم | يو غرته | چې بچ به کړی ما | د اوبو نه | اووئيل نوح

هغه په جواب کښې اووئيل چې زهٔ به اوس يو غرته اوخيژم اچې دسيلاب داوبو نه به مې بچ کړی | هغه نوح ﷺ

لَا عَاصِمَ الْيَوْمَ مِنْ اَمْرِ اللّٰهِ اِلَّا مَنْ رَّحِمَ ۚ وَحَالَ

نشته بچ کيدونکې | نن ورځ | دحکم دالله نه | مګر په چا چې | رحم اوکړی هغه | او حائله شوه

ورته اووئيل | چې نن هيڅوک دالله ﷻ د حکم (عذاب) نه بچ کيدونکې نشته | مګر الله چې په خپله په

بَيْنَهُمَا الْمَوْجُ فَكَانَ مِنَ الْمُغْرَقِيْنَ۝

په منځ د دواړو کښې | چپه | نو شو هغه | د ډوبيدونکو څنې |

چا رحم اوکړی | په دې کښې د دواړو ترمينځه يوه چپه راوچته شوه | نو هغه ډوبيدنکو کښې شامل شو

قوله تعالى: وَقَالَ ارْكَبُوْا فِيْهَا بِسْمِ اللّٰهِ مَجْرٖىهَا الخ وَمُرْسٰىهَا

د نوح ﷺ طوفان:- حضرت نوح ﷺ چه څوك خان سره بوتلل غوښتل هغوی ته نی اوفرمائيل راشنی په دې کښې سواره شنی ددې د اوبو دپاسه تلل دالله ﷻ د نوم په برکت دی اودغه شان ددې آخری اودريدل به هم د دغه الله ﷻ په نوم سره وی. په يوقراءت کښې (مَجْرٖىهَا وَمُرْسٰىهَا) هم دې هم دغه د الله ﷻ هغه ته حکم وو چه کله ته اوستاملګری په ښه شان سره کيننئ نووائې (اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ نَجّٰنَا مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ۝) اودا دعا هم اوکړنی (وَقُلْ رَّبِّ اَنْزِلْنِيْ مُنْزَلًا مُّبٰرَكًا وَّاَنْتَ خَيْرُ الْمُنْزِلِيْنَ۝) ددې دپاره مستحب دی چه دټولو کارونو په شروع کښې بسم الله اووائی که په کشتئ کښې سوريدل وی اوکه په څاروی باندې سوريدل وی لکه څنګه چه د الله ﷻ فرمان دې چه هم دغه الله ﷻ تاسو دپاره دا ټولې جوړې پيداکړی دی او کشتئ او

خاروی ستاد سورلنی د پاره پیدا کړی دی چه تاسو د دوی په شاباندې سورلی کونی الخ[۱] په حدیث کښې هم ددې تائید اورغبت راځی. په سورة زخرف کښې به د دې ان شاء الله پوره بیان وی. په طبرانی کښې دی چه حضور ﷺ فرمائی زما د امت د پاره د ډوبیدو نه بچ کیدل د هغه په دې قول کښې دې چه په سوریدو سره وائې ﴿بسم الله الملك وماقدروالله حق قدره﴾ او ﴿ وَقُل رَّبِّ أَنزِلْنِي مُنزَلًا مُّبَارَكًا وَأَنتَ خَيْرُ الْمُنزِلِينَ ﴾

**په هر کار کښې بسم ا الله وئیل مستحب دی::** دې دعاپه آخره کښې دالله وصف غفوراورحیم ځکه راوړلې شوې دې چه دکافرانودسزا په مقابله کښې په مؤمنانوباندې درحمت اوشفقت اظهاروی. لکه چه فرمان دې چه ستارب ډېر سزاوارکونکې او ورسره غفوراورحیم هم دې[۲] اوپه آیت کښې دی ﴿وَإِنَّ رَبَّكَ لَذُو مَغْفِرَةٍ لِّلنَّاسِ عَلَىٰ ظُلْمِهِمْ ۖ وَإِنَّ رَبَّكَ لَشَدِيدُ الْعِقَابِ﴾ یعنی ستا پروردګاردخلقو ګناهونه بښونکې هم دې.اوهغه سخته سزاوارکونکې هم دې.نورهم ډېر آیاتونه دی په کوم کښې چه د رحمت او بدلې اخستلو بیان یوځائې دې.

**دطوفان اوبه په ټولې دنیا کښې خورې شوې وې::** اوبه په مخ د زمکې خورې شوی دی چرته د اوچت نه اوچت غر یادلوړې نه لوړه غونډئی هم نه ښکاری چه د غرونونه هم پنځلس لاسه یا په یویل قول اتیا میله اوچتې شوې دی. سره د دې دنوح ﷺ کشتئی د الله ﷻ په حکم برابره او صحیح روانه ده. ځکه الله ﷻ د هغې محافظ دې.اوهغه خاص دهغه عنایت اومهربانی ده.لکه چه فرمائی ﴿إِنَّا لَمَّا طَغَا الْمَاءُ حَمَلْنَاكُمْ فِي الْجَارِيَةِ﴾ یعنی د اوبو په سختو چپوکښې مونږ ته په خپله کشتئی کښې اوخیژولې چه مونږ دا ستا د پاره نصیحت جوړکړو اویاد ساتونکی غوږونه دا یاد اوساتی. او په یو آیت کښې دی چه مونږ ته د تختو والا کشتئ کښې سورکړې او په خپل حفاظت سره مو اخواکوزکړې اوکافرانوته مو د هغوی د کفر انجام اوخودلو اوهغوی مو یو نشان جوړکړل. آیا اوس هم څوك شته چه عبرت حاصل کړی؟ ([۳])
هغه وخت حضرت نوح ﷺ خپل خوئ ته آوازاوکړو دا د هغه څلورم خوئ وو د هغه نوم یام وو دې کافر وو.حضرت نوح ﷺ هغه ته په کشتئ کښې د سوریدو په وخت د ایمان راوړو خپل خان سره د کیناستو هدایت اوکړو چه د ډوبیدونه اود کافرانود عذاب نه بچ شی. خودې بدنصیب جواب ورکړو چه نه ماته د دې ضرورت نشته په غرباندې به اوخیژم اود طوفان او باران نه به بچ شم.

**د کنعان د کشتئ جوړولو خبره بې بنیاده ده::** یو اسرائیلی روایت دې چه هغه د شیشې کشتئی جوړه کړې وه. والله اعلم. په قرآن پاك کښې خودا دی چه هغه دا ګنړلې ووچه دا طوفان به د غرونوڅوکوته نه رسی چه زه هلته اورسم نودا اوبه به زما څه اوکړی؟ په دې باندې حضرت نوح ﷺ جواب ورکړو چه د الله ﷻ د عذاب نه یوځائ کښې هم پناه نشته هم هغه به بچ کیږی په چاچه د الله ﷻ رحم وی. دلته عاصم په معنی دمعصوم دی لکه چه طاعم دمطعوم په معنی کښې اوکاسی دمکسوپه معنی کښې راځی. دا خبرې کیدلې چه یوه چپه راغله اودنوح ﷺ خوئ یوړودوب ئې کړو.

| وَقِيْلَ | يٰۤاَرْضُ | ابْلَعِيْ | مَآءَكِ | وَيٰسَمَآءُ | اَقْلِعِيْ | وَغِيْضَ | الْمَآءُ | وَقُضِيَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| او اوونیلې شو | ائې زمکې | راکاږه | اوبه خپلې | او ائې آسمانه | بندشه | او کمې شوې | اوبه | او اوشوه |

اوحکم اوشوچې ائې زمکې خپلې اوبه راکاږه اوائې اسمانه بس شه انو اوبه کمې شوې اوکار پوره

[۱] ٤٣/الزخرف:۱۲.
[۲] المعجم الکبیر:۱۲٦٦۱.
[۳] ٥٤/القمر:۱۳، ۱٥.

| الْأَمْرُ | وَاسْتَوَتْ | عَلَى الْجُودِيِّ | وَقِيلَ | بُعْدًا | لِّلْقَوْمِ | الظَّالِمِينَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فیصله | او ودریده بیړئ | په جودی باندې | او اوونیلې شو | لرې والې دې وی | دپاره دقوم | ظالم |

شو او بیړئ په جودی (نومې غر) باندې اودریده او اوونیلې شو چې ظالمان خلق (درحمت نه) لرې

قوله تعالى: وَقِيلَ يَا أَرْضُ ابْلَعِي مَاءَكِ

**د طوفان نوح ختمیدل:-** په مخ دزمکې ټول خلق په دې طوفان کښې چه په حقیقت کښې د الله ﷻ غضب اود یومظلوم پیغمبر ﷺ د بددعا عذاب وو غرق شو. دغه وخت الله ﷻ چه ډیر لوئی اود عزت خاوند دې زمکې ته د دې ټولو اوبورابنکلو حکم اوکړو چه د دې نه راخوټکیدلې اود آسمان نه راوریدلې وې. او ورسره آسمان ته هم د اوبو د راورولو د بندولوحکم اوشو اوبه کمې شوې اوکار اوشو یعنی ټول کافران ختم شول اوصرف د کشتئ والا مومنان بچ شول.کشتئ د الله ﷻ په حکم باندې په جودی غر اودریده. (۱)

**د جودی غرپه کوم ځائې کښې دې ؟::**مجاهد رحمه الله وائی چه دا په جزیره کښې یوغردې. ټول غرونه ډوب کړې شوې وواودا غردخپلې عاجزئی اوتواضع په وجه دغرقیدو نه بچ شوې وو.هم دلته د نوح ﷺ کشتئ اودریده.حضرت قتاده رحمه الله فرمائی چه پوره یوه میاشت ولاړه وه هغې نه پس ټول کوز شول. کشتئ د خلقو د عبرت د پاره دلته صحیح سالمه ډیر عمر ولاړه وه تردې چه د دې امت اولنوخلقو هم هغه اولیدله. د(۲)دې کشتئ نه پس ډیرې بهترینې او په سوونومضبوطې کشتئ جوړې شوې خو خاورې اوایرې شوې. د ضحاک رحمه الله وینا ده چه جودی غر په موصل کښې دې. بعضې وائی چه هم طور غر ته جودی هم ونیلې شی. زربن حبیش به په منقش کړې شوو دروازوکښې داخل شو او د نبی طرف په زاویه کښې به نې په کثرت سره مونځ کولو په دې لیدوباندې نوبه بن سالم تپوس اوکړو دا ته چه د جمعې په ورځ اکثر دلته مونځ کوې نود دې څه وجه ده؟ نو هغه جواب ورکړو چه د نوح ﷺ کشتئ دلته لګیدلې وه.

د ابن عباس رضی الله عنه قول دې چه د نوح ﷺ سره په کشتئ کښې بال بچ سره ټول اتیا(۸۰) کسان سواره وو. یونیم سل (۱۵۰) ورځې هغوی ټول په کشتئ کښې وو. الله ﷻ د کشتئ مخ مکې شریفې طرف ته کړه. دلته هغې څلوینښت ورځې د بیت الله شریف طواف کولو. بیا هغه الله ﷻ د جودی طرف ته روانه کړه او هلته نې اودروله. حضرت نوح ﷺ کارغه اولیګلو چه د اوچې خبر راوړی هغه د یوې مردارې په خوړلوکښې اخته شو اووخت نې اولګولو. بیا نوح ﷺ یوه کونتره اولیګله نوهغې په خپله مخوکه کښې د زیتون دونې پاڼړه او په پنجو کښې خاوره راوړه اوواپس راغله. دې سره حضرت نوح ﷺ پوهه شوچه اوبه اوچې شوې او زمکه ښکاره شوه. نو هغوی د جودی نه راکوز شول او هم هلته نې یوکلې غونډې جوړکړو هغې ته ثمانین وائی. یوه ورځ چه کله سحر خلق راپاسیده نو د هریو ژبه بدله شوې وه. اتیا ژبې ونلې مګر نوح ﷺ هم هغه ژبه ونیله چه په ټولوکښې اعلی او بهترین ژبه عربی وه. یو به د بل په خبره نه پوهیدلو نو نوح ﷺ ته الله ﷻ د ټولو ژبې معلومې کړې او هغوی په دې ټولوکښې مترجم وو د یومطلب به نې بل ته خودلو.

حضرت کعب احبار رحمه الله فرمائی چه د نوح ﷺ کشتئ په مغرب او مشرق کښې روانه وه، بیا په جودی غرباندې اودریده. حضرت قتاده رحمه الله وغیره فرمائی درجب په لسم تاریخ مسلمانان پدې کښې سواره شوې وو پنځو میاشتوپورې هم پدې کښې وو.دوی سره کشتئ په جودی باندې دیوې میاشتې

---

۱) الطبری: ۲۳۸/۱۵.
۲) ایضاً.

پورې ولاړه وه. اخر دمحرم د عاشورې په ورځ هغه ټول د دې نه راکوز شول.د دې قسم یو مرفوع حدیث هم په ابن جریر کښې دې. هغوی په دې ورځ روژه هم اوستاله. والله اعلم.

**د عاشورې د روژې حکم ::** په مسنداحمد کښې دی چه حضورﷺ د عاشورې په ورځ یهودیان په روژه ساتلوسره اوکتل نو ددې سبب نې ترې تپوس اوکړو نو هغوی اووئیل چه په دې ورځ حضرت موسی ﷺ او بنی اسرائیل د دریاب نه پورې وتلي وو او فرعون اود هغه قوم نې ډوب کړې وو. او هم په دې ورځ د نوح ﷺ کشتئ په جودی غر باندې لګیدلې وه. نودې دواړو پیغمبرانوعلیهم السلام د الله ﷻ د شکر کولو د پاره په دې ورځ روژه ساتلې وه. حضورﷺ دې اوریدو سره اوفرمائیل چه د موسی ﷺ خود ټولو نه زیات حقدار زه یم اود دې ورځې د روژې زه ډیر مستحق یم نو حضورﷺ د دې ورځې روژه اوساتله او خپلو صحابه کرامو ﷺ ته نې اوفرمائیل خوك چه په روژې سره دی هغوی خودې خپله روژه پوره کړي او چه چا خوراك کړې دې هغه دې هم باقی ورځ خوراك نه کوی (۱) دا روایت خو په دې سند سره غریب دې خود دې د بعضو حصو شاهد په صحیح حدیث کښې هم موجود دی.

**د ظالم اخری انجام خساره وی::** بیا ارشاد کیږی چه ظالمان په خساره کښې اود الله ﷻ د رحمت نه ډیر لرې دی. هغه ټول هلاك شو. په هغوی کښې یو هم باقی بچ نه شو.

**د قوم نوح دیوې مور او ځوئې واقعه::** په تفسیر ابن جریر او تفسیر ابن ابی حاتم کښې دی چه حضور ﷺ فرمائیلی دی که الله ﷻ د نوح ﷺ د قوم نه په یو باندې هم رحم کونکې وو نو د هغه ماشوم په مور به نې رحم کړې وو. حضرت نوح ﷺ په خپل قوم کښې نهه نیم سوه کاله (۹۵۰) پورې وو هغوی یو ونه کرلې وه چه ترسلوکالوپورې غټیدله او لوئیدله. بیائې هغه پرې کړه او تختې جوړول نې شروع کړه. کافرانو خلقو به توقې اومسخرې کولې چه دې به په دې اوچه باندې کشتئ څنګه چلوی. هغوی به جواب ورکولو چه ډیر زر به نې په خپلو سترګو اووینئی کله چه جوړه شوه زمکې اوبه راخوټکول شروع کړه او آسمان راورول شروع کړه او لارې کوڅې په اوبوکښې ډوبې شوې نود هغه ماشوم مور د چاچه خپل بچی سره په اوچته درجه مینه وه هغې دا واخستو او غرطرف ته لاړه. هغې زر زر په دې باندې ختل شروع کړه دریمې حصې ته اورسیده خوچه کله هغې اوکتل چه اوبه هلته هم اورسیدې نو نوره اوچته اوختله یو په دریمه حصې ته اورسیده چه کله هلته هم اوبه اورسیدې نو هغې په څوکه باندې سا واخستله خو اوبه هلته هم اورسیدلې کله چه ترمرنې مرنې اوبه اورسیدلې نوهغې خپل بچې په دواړو لاسونوکښې اوچت اونیولو خو اوبه هلته هم اورسیدلې اومور او بچې دواړه غرق شو. نوکه په هغه ورځ یوکافر هم بچ کیدونکې وونو الله ﷻ به د هغه ماشوم په مور باندې رحم کولو. (۲) داحدیث په دې سند سره غریب دې .د کعب احبار مجاهد ﷺاو جبیر نه هم د دې ماشوم اود هغه د مور دا قصه مروی ده.

| مِنْ اَهْلِيْ | اِبْنِيْ | اِنَّ | رَبِّ | فَقَالَ | نُوْحٌ رَّبَّهٗ | وَنَادٰي |
|---|---|---|---|---|---|---|
| زما د کورد خلقونه دې | خوئې زما | بیشکه | انې ربه زما | نووې وئیل | نوح رب خپل ته | او اواز اوکړو |
| انې زما پروردګاره زما دا خوئې | | | | | حضرت نوح ﷺ خپل پروردګار ته اواز اوکړو چې | او پاتې شول |

| قَالَ يٰنُوْحُ | اَحْكَمُ الْحٰكِمِيْنَ۝ | وَاَنْتَ | الْحَقُّ | وَعْدَكَ | وَاِنَّ |
|---|---|---|---|---|---|
| او وئیل الله اې نوح | او بهتره فیصله کونکې یې دحاکمانو | او ته | حقه ده | وعده ستا | او بیشکه |
| اوته په ټولو فیصله کونکو کښې | او ستا وعده بیخې رېښتونې ده | | | | خو هم زما د کورد خلقوځنې دې |

---

(۱) احمد: ۲/۳۵۹-۳۶۰.

(۲) حاکم: ۲/۳۴۲ وسنده حسن.

إِنَّهُ لَيْسَ مِنْ أَهْلِكَ ۖ إِنَّهُ عَمَلٌ غَيْرُ صَالِحٍ ۖ فَلَا تَسْأَلْنِ

بیشکه هغه| نه دي| د اهل ستا نه | بیشکه د دهٔ| عمل | نیک نه دي |نو مهٔ کوه سوال زما نه

بهترینه فیصله کونکي يئ| الله اوفرمائیل چي اني نوح ﷺ دي ستا دکور دخلقونه نه دي| نو زما نه

مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ ۖ إِنِّي أَعِظُكَ أَنْ تَكُونَ

دهغه خبري | چي نه وي | تالره | په هغي باندي| علم |بیشکه زهٔ |نصیحت کوم تاته |چي (نه) شي ته

داسي خیز مهٔ غواړه| چي تهٔ پري نه پوهیږي | ............... ............... زهٔ درته نصیحت کوم چي

مِنَ الْجَاهِلِينَ ۝ قَالَ رَبِّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ أَنْ أَسْأَلَكَ

د جاهلانو نه | اووئیل نوح| اني ربه زما| بیشکه زهٔ| پناه غواړم ستا|(د دي نه) چي سوال اوکړم ستا نه

چرته دنادانو نه نهٔ شي | حضرت نوح ﷺ اووئیل چي اني زما پروردګاره زهٔ په تا سره پناه غواړم د دي

مَا لَيْسَ لِي بِهِ عِلْمٌ ۖ وَإِلَّا تَغْفِرْ لِي وَتَرْحَمْنِي

د هغه خیز| چي نشته|ما ته په هغي| علم | اوکه اونکړه ببنبنه تا|ماته |او رحم دي اونهٔ کړو په ما باندي

نهٔ چي ستا نه داسي خیز اوغواړم |چي زما پري پوهه نه وي| اوکه تا ماته ببنبنه اونکړه| اوپه مادي رحم اونکړو

أَكُنْ مِنَ الْخَاسِرِينَ ۝

نوشم به زهٔ| د تاوان موندونکو نه|

نو زهٔ به په تاوانیانو کنبي شمار شم|

قوله تعالی:: وَنَادَىٰ نُوحٌ رَبَّهُ فَقَالَ رَبِّ إِنَّ ابْنِي مِنْ أَهْلِي

**دنوح ﷺ دعا اود الله ﷻ جواب**:-یاد ساتنی چه دا دعاحضرت نوح ﷺ صرف په دي غرض باندي وه چه دهغوی ته په صحیح توګه دخپل ډوب شوی خوئ حال معلوم شي.وائی چه پروردګارته داهم ښکاره خبره ده چه زما خوئ زماد اهل نه وو اوزما داهل ستا دبچ کولو وعده وه اودا هم ناممکن دی چه ستا رعده غلطه وی.نوبیا زما خوئ دکافرانوسره څنګه غرق کړي شو؟ جواب ملاوشو چه ستاد کوم اهل د بچ کولو زماوعده وه په هغوی کښي ستا دابچي داخل نه وو زماوعده دایماندارانو دبچ کولووه، ما ونیلي ور چه ﴿وَأَهْلَكَ إِلَّا مَنْ سَبَقَ﴾ یعنی ته خپل اهل هم په کشتئی کښي وراوخیژوه خو چه په چاباندي زما خبره زیاته شوي ده.دي دکفر په وجه هم دهغوی نه وو کوم چه زماپه وړاندینی علم کښي کافران او ډوبیدونکی مقرر شوی وو.

فائده : **د کنعان د نوح ﷺ خپل ځوئي وو**:- دا هم یادساتنی چه کومو خلقو دا ونیلی دی چه دا هډو د نوح ﷺ خوئ نه وو ځکه چه د هغوی د نطفي نه نه وو بلکه د بدکارئی نه وو. اوبعضوونیلی دی چه دا د هغه د بی بی د بل خاوند خوئ وو دا دواړه قوله غلط دی. ډیرو بزرګانو په صفا الفاظوکښي دي ته غلط ونیلی دی بلکه دابن عباس ﷺ او نورو ډیرو سلفونه نقل دی چه د یونبی بی بی هیڅ کله هم زنا نه ده کړي. نودلته د دي فرمان نه چه هغه ستا د اهل نه نه دي دا مطلب دي چه ستا د کوم اهل د خلاصی زماوعده وه دي د هغوی نه نه دي. هم دا خبره رښتیا ده او هم دغه قول اصلی دي. دي نه علاوه بل طرف ته تلل صرف غلطی ده او ښکاره خطا ده. د الله ﷻ غیرت دا خبره د سره نه شی قبلولي چه د خپل یو نبی کور ته زناکاره ښځه ورکړی. خیال کوني چه د حضرت عائشه ﷺ باره کښي چا بهتان تړلي وو په هغه باندي الله ﷻ څومره غضبناك شو؟ د دي هلك داهل نه د وتلووجه پخپله قرآن پاك بیان

فرمانیلي چه دده عمل نیك نه وو.

**د یو نبي ښځې هم زنا نه ده کړې** ::عکرمه ﷫ فرمائي یوقراءت ﴿إِنَّهُ عَمَلَ غَيْرَ صَالِحٍ﴾ دی. (۱) د مسند په حدیث شریف کښې دی حضرت اسماء بنت یزید ﵄ فرمائي ما رسول الله ﷺ ﴿إِنَّهُ عَمَلَ غَيْرَ صَالِحٍ﴾ لوستلې اوریدلې دي. او ﴿قُلْ يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَى أَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوا مِنْ رَحْمَةِ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا إِنَّهُ هُوَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ﴾ لوستونکې مې اوریدلې دي. (۲) حضرت ابن عباس ﵁ نه تپوس اوشو چه د ﴿فخانتاهما﴾ څه مطلب دی؟ هغوی اوفرمائیل د دې نه مراد زنا نه ده بلکه د حضرت نوح ﵇ د ښځې خیانت خو دا وو چه خلقو ته به ئې وئیل دا مجنون دې. اود حضرت لوط ﵇ د ښځې خیانت دا وو چه کوم میلمانه به هغوی کره راتلل خپل قوم ته به ئې خبرورکولو.بیا هغوی آیت ﴿إِنَّهُ عَمَلَ غَيْرَ صَالِحٍ﴾ اولوستلو(۳) د حضرت سعید بن جبیر ﷫ نه چه کله د حضرت نوح ﵇ د خوئ باره کښې تپوس اوشو نو هغوی اوفرمائیل چه الله ﷻ رښتونې دې هغه ده ته دحضرت نوح ﵇ خوئ وئیلې دې. نو هغه یقینًا د حضرت نوح ﵇ دنسب نه ثابت خوئ وو. گورئ الله ﷻ فرمائي ﴿وَنَادَىٰ نُوحٌ ابْنَهُ﴾ اودا هم یاد ساتئ چه د بعضې علماؤ قول دې چه د یونبي ښځې کله هم زنا نه ده کړې. هم داسې دحضرت مجاهد ﷫ نه روایت دې. اوهم دا د ابن جریر ﷫ خوښ کړې شوې دې. او په حقیقت کښې ټیك او صحیح خبره هم دغه ده.

| قِيلَ | يَا نُوحُ | اهْبِطْ | بِسَلَامٍ | مِنَّا |
|---|---|---|---|---|
| اوونیلې شو | ائې نوح | کوز شه | په سلامتیا سره | د طرفه زمونږ |
| اوونیلې شو ورته ائې نوح ﵇ زمونږ د طرفه په سلامتیا او برکتونو | | | | |

| وَبَرَكَاتٍ | عَلَيْكَ | وَعَلَىٰ أُمَمٍ | مِمَّنْ | مَعَكَ | وَأُمَمٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| او برکتونو سره | په تاباندې | او په ډلو باندې | دهغه چانه | چې ستا سره دی | اوڅه نورې ډلې دی |
| سره کوز شه \| دا به په تا او په هغې ډلو باندې وی کوم چې ستا دملګرو نه تا سره دی \| اوداسې امتونه | | | | | |

| سَنُمَتِّعُهُمْ | ثُمَّ | يَمَسُّهُمْ | مِنَّا | عَذَابٌ أَلِيمٌ |
|---|---|---|---|---|
| چې نفع به ورکړو مونږ هغوئ ته | بیا به | اورسی هغوئ ته | دطرفه زمونږنه | عذاب دردناك |
| به هم راځي اچې مونږ به ورله لږې ورځې عیشونه ورکړو \| بیا به پرې زمونږ د طرفه دردناك عذاب راشي | | | | |

**قوله تعالیٰ:** ﴿قِيلَ يَا نُوحُ اهْبِطْ بِسَلَامٍ مِنَّا وَبَرَكَاتٍ عَلَيْكَ وَعَلَىٰ أُمَمٍ مِمَّنْ مَعَكَ﴾

**د نوح ﵇ د کشتئ نه کوزیدل:**-کشتئ اودریده اودالله ﷻ سلام په هغوی باندې اوپه ټولو مؤمنانو ملګرواودهغوی په اولادچه ترقیامته پورې څوك ایمان راوړونکی دی په ټولونازل شو. ورسره د کافرانو د دنیاوی فائدې نه مستفید کیدواوبیا په عذابونوکښې دراګیریدوهم اعلان اوشو. نودا آیت د قیامته پورې دمؤمنانو په برکت اوسلامتیا اود کافرانو په سزا باندې دې. د امام ابن اسحاق ﷫ بیان دې کله چه الله ﷻ جل شانه د طوفان بندولو اراده اوفرمائیله نو په مخ د زمکه ئې یوه هوا راولیګله کومې چه اوبه اودرولې اود هغې راخوټکیدل بندشو اوورسره د آسمان دروازې هم دکومونه چه تراوسه پورې اوبه راوریدلې بند کړې شوې.

(۱) الطبري:۱۵/۳۴۳.
(۲) احمد:۶/۴۵۴، ابوداؤد کتاب الحروف والقراءت رقم:۳۹۸۲وهوحسن، ترمذی:۲۹۳۲، بدون (یاعبادی..).
(۳) حاکم:۲/۴۹۶.

زمکې نه د اوبو راښکلو حکم اوشو هم هغه وخت اوبه په کمیدو شوې اود تورات په قول سره د اوومې میاشتې په اوولسم تاریخ د نوح ﷺ کشتئ د جودي په غر اودریده. د لسمې میاشتې په اولنی تاریخ د غرونو څوکې کولاؤشوې.دهغې په څلویښتمه ورځ دکشتئ نبئ داوبود پاسه ښکاره شوې. بیا هغوی کارغه داوبو دتحقیق دپاره اولیګلوخو هغه واپس رانغلو. هغوی کونتره اولیګله چه واپس راغله دخپلې پښې کیخودو هغې ته ځائ ملاؤنه شو.هغوی په خپل لاس باندې هغه واخسته او دننه نی یوړه. بیا اووه ورځې پس نی هغه بیا اولیګله. واپس راغله او په خپله مخوکه کښې دزیتون پاتره وه نود هغې نه د الله ﷻ نبی معلومه کړه چه اوبه د زمکې نه لرې شان اوچتې پاتې دی. بیا نی اووه ورځې پس اولیګله چه واپس شوه نو هغوی پوهه شو چه زمکه بالکل اوچه شوې ده. غرض دا چه پوره یو کال پس حضرت نوحﷺ دکشتئ نه سرپوخ اوچت کړو او آواز راغلو چه اې نوحﷺ! زمونږ په نازل شوې سلامتیاسره اوس راکوز شه.

| تِلْكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ الْغَيْبِ | نُوْحِيْهَآ اِلَيْكَ | مَا كُنْتَ | تَعْلَمُهَآ اَنْتَ |
|---|---|---|---|
| دا قیصې دخبرو دغیبو نه دی | چې وحی کوؤ مونږ دهغې تاته | نه وې ته | چې معلوم وو تاته هغه |
| دا د غیبوخبرې دی چې مونږ ئې تاته دوحی په ذریعه رالیږو | تاته ددې نه وړاندې د دې څه پته نۀ وه | | |
| وَلَا قَوْمُكَ | مِنْ قَبْلِ هٰذَا | فَاصْبِرْ | اِنَّ الْعَاقِبَةَ لِلْمُتَّقِيْنَ |
| اونۀ قوم ستاته | مخکښې د دې نه | نوصبرکوه | بیشکه چې ښۀ انجام دپاره دپرهیزګارانو دی |
| اونۀ ستاقوم ته | (اوس د وحې په ذریعه درته معلوم شو)نو صبره کوه (نیک) انجام د پرهیزګارو دی | | |

**قوله تعالی: تِلْكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ الْغَيْبِ**

**د وړاندینوواقعاتو حالات د وحی په ذریعه بیانیدل:-** دنوحﷺ قصه اود دې په شان نورتیرشوی واقعات کوم چه ستا په وړاندې نه دی تیرشوی خومونږ د وحی په ذریعه ته د هغې نه خبر کړې اوته د هغې حقیقت خلقوته داسې ښکاره کوې لکه چه د هغې د کیدو په وخت ته هم هلته موجود وې. د دې نه وړاندې خو نه تاته د دې څه خبر وو اونه ستا قوم د دې څه علم لرلو چه د چا هم څه ګمان وی چه تا د چا نه زده کړې وی. نو صفا خبره ده چه دا د وحی په ذریعه د الله ﷻ نه تاته معلومه شوه او بالکل هم هغه شان څنګه چه په وړاندینو کتابونو کښې موجود دی. اوس تاله د هغوی په تکلیفونو او دروغ ګڼړلو باندې صبراو برداشت کول پکار دی مونږ ستا به امداد باندې یو. تاته اوستا تابعدارانوته به په هغوی باندې غلبه ورکړو اود انجام په لحاظ سره به هم ته غالب نې. هم دغه طریقه د نورو پیغمبرانو علیهم السلام هم وه.

| وَاِلٰى عَادٍ | اَخَاهُمْ هُوْدًا | قَالَ | يٰقَوْمِ | اعْبُدُوا اللّٰهَ | مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوعادیانوته مونږ اولیږلو | رور دهغوئ هود | اووئیل هغه | اې قومه زما | بندګی کوئ دالله | نشته تاسو دپاره یو معبود |
| اوقوم عاد ته مو دهغوئ (قومی) رور هود ﷺ اولیږلو | هغه ورته اووئیل اې زما قومه تاسو | | | | |
| غَيْرُهٗ | اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا مُفْتَرُوْنَ | يٰقَوْمِ | لَآ اَسْئَلُكُمْ | عَلَيْهِ | |
| سوادهغه نه | نه یئ تاسو مګر دروغ جوړونکی | اې زما قومه | نه غواړم زۀ ستاسو نه | په دې کار باندې | |
| دالله ﷻ عبادت کوئ دهغه نه بغیر ستاسو بل معبود نشته | تاسو خو بس په الله دروغ تړلی دی | اې زما قومه | | | |

| اَجْرًا | اِنْ اَجْرِيَ | اِلَّا | عَلَى الَّذِيْ | فَطَرَنِيْ | اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ۞ |
|---|---|---|---|---|---|
| څه بدله | انه ده بدله زما | مګر | په هغه الله باندې | چې پيدا کړې ني يم زه | ايا نو دعقل نه کار نه اخلئ تاسو |
| زه ستاسو نه په دې (تبليغ) هيڅ بدله نه غواړم | | زما بدله خو دهغه په ذمه ده | | چې زه ني پيدا کړې يم | انو تاسو |

| وَيٰقَوْمِ | اسْتَغْفِرُوْا | رَبَّكُمْ | ثُمَّ | تُوْبُوْٓا | اِلَيْهِ | يُرْسِلِ السَّمَآءَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او اې زما قومه | معافي اوغواړئ | درب خپل نه | بيا | توبه اوباسئ | هغه ته | راوبه ورروی اسمان (نه) |
| ولې دعقل نه کار نه اخلئ | | او اې زما قومه دخپل پروردګار نه بښنه اوغواړئ | | بيا هغه ته توبه اوباسئ | | |

| عَلَيْكُمْ | مِّدْرَارًا | وَّيَزِدْكُمْ | قُوَّةً | اِلٰى قُوَّتِكُمْ | وَلَا تَتَوَلَّوْا |
|---|---|---|---|---|---|
| په تاسو باندې | په شيبوشيبو باران | اوزيات به درکړي تاسو له | طاقت | سره دقوت ستاسو | اومه اړوئ مخ |
| هغه به درباندې په شيبو شيبو بارانونه اوورو ی | | اوتاسو ته به ددې طاقت سره نور زيات طاقت درکړي | | | |

| مُجْرِمِيْنَ۞ |
|---|
| په داسې حال کښې چې مجرمان يئ |
| اود مجرم په حيثيت (دحق نه) مخونه مه اړوئ |

**قوله تعالى:: قَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ**

**دحضرت هود عليه السلام دعوت:-** الله ﷻ حضرت هود عليه السلام خپل قوم ته رسول جوړ کړو او ونې ليګلو، هغه قوم ته د الله ﷻ د توحيد دعوت ورکړو اود الله ﷻ نه سوا دنورو دعبادت کولونه نې منع کول او ورته نې اوخودل چه دچا تاسو عبادت کوئ دهغوی عبادت پخپله تاسو جوړ کړي دي بلکه د هغوی نومونه او وجود ستاسو خيال فضوليات دی.

هغوی ته نې اووئيل چه زه تاسو نه د خپل دې نصيحت څه بدله يا معاوضه نه غواړم. زما ثواب به زما رب ماله راکوی چا چه زه پيدا کړي يم. آيا تاسو دا غټه خبره هم په عقل کښې نه راولئ چه د دنيا او آخرت د ښيګړې تاسو ته لار خودونکې تاسو نه څه اجرت نه غواړي. تاسو په استغفار کښې اخته شئ اود تيروشوو ګناهونو د الله ﷻ نه بخښنه اوغواړئ توبه اوکړئ او د راتلونکو ګناهونو نه منع شئ. دا دواړه خبرې چه په چا کښې هم وی الله ﷻ به د هغه رزق آسان کړی. دهغه کار به په هغه باندې آسان کړي. دهغه د شان حفاظت به کوی. واورنې پداسې کولوباندې به په تاسوبرابر ښکلې او مزيدار بارانونه راوربړی اوستاسو په طاقت کښې به ډيرزيات برکتونه وی. په حديث شريف کښې دی چه کوم سړې استغفار ضروری اوګرځوي الله ﷻ هغه له د هر مشکل نه خلاصې ورکوی اود هرې تنګئ نه ورته فراخي ورکوی او رزق ورته دداسې ځائ نه رسوی چه پخپله هم دهغه په ګمان کښې نه وی.[1]

| قَالُوْا | يٰهُوْدُ | مَا جِئْتَنَا | بِبَيِّنَةٍ |
|---|---|---|---|
| هغوئ اووئيل | اې هودا | نه دې راوړې تامونږ ته | دليل ښکاره |
| هغوئ جواب کښې اووئيل چې اې | | | |

[1] ابوداؤد كتاب الوتر باب في الاستغفار: ۱۵۱۸، ابن ماجة: ۳۸۱۹، عمل اليوم والليلة: ۴۵۶، المعجم الكبير: ۱۰۶۶۵، حاكم: ۲۶۲/۷.

وَمَا نَحْنُ بِتَارِكِيْٓ اٰلِهَتِنَا عَنْ قَوْلِكَ وَمَا نَحْنُ لَكَ بِمُؤْمِنِيْنَ۝

اونه یو مونږ پرېښودونکی | خدایان خپل | په وینا ستا | اونه یو مونږه | په تا باندې | ایمان راوړونکی

هو د تا خو خان سره مونږ ته څه سند نهٔ دې راوړی او مونږ خپل معبودان ستا په وینا نشو پرېخودې او په تا ایمان نشو راوړی

اِنْ نَّقُوْلُ اِلَّا اعْتَرٰىكَ بَعْضُ اٰلِهَتِنَا بِسُوْٓءٍ ؕ قَالَ اِنِّیْٓ

نهٔ وا یو مونږه | مګر دا چې | در رسولې دې تا ته | خینو | خدایانو زمونږه | څه ضرر | او ونیل هود | بیشکه زهٔ

مونږ دا ګڼړو چې ګنی زمونږ یو معبود تهٔ په دې مشقت کښې اچولې یې هغه او ونیل چې زه الله ﷻ ګواه کوم

اُشْهِدُ اللّٰهَ وَاشْهَدُوْٓا اَنِّیْ بَرِیْٓءٌ مِّمَّا تُشْرِكُوْنَ۝ۙ مِنْ دُوْنِهٖ

ګواه کوم | الله | او ګواهان شئ تاسو | چې زهٔ | بیزاره یم | د هغې نه | چې شریکوی نې تاسو | غیر د الله نه

او تاسو هم ګواهان اوسیږئ چې زهٔ ستاسو د شرک نه ویزار یم د الله ﷻ نه

فَكِيْدُوْنِیْ جَمِيْعًا ثُمَّ لَا تُنْظِرُوْنِ۝ اِنِّیْ تَوَكَّلْتُ عَلَى اللّٰهِ

نو تدبیرونه او کړئ زما خلاف | ټول | بیا | مهٔ راکوئ مهلت ماته | بیشکه ما بهروسه کړی ده | په الله باندې

سوا تاسو ټول ماته سازشونه جوړ کړئ او بیا ماته لږ هم مهلت مهٔ راکوئ زما په الله ﷻ بهروسه ده

رَبِّیْ وَرَبِّكُمْ ؕ مَا مِنْ دَآبَّةٍ اِلَّا هُوَ اٰخِذٌۢ بِنَاصِيَتِهَا ؕ

چې رب زما دې | او رب ستاسو دې | نشته هیڅ یو زنده سرې | مګر الله | نیونکې دې | تندې د هغه

چې زما او ستاسو پروردګار دې | داسې هیڅ یو ساه لرونکې نشته | چې د هغه تندې

اِنَّ رَبِّیْ عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ۝

بیشکه | رب زما | په لاره نیغه دې |

د الله ﷻ په قبضه کښې نهٔ وی | بیشکه زما پروردګار په نیغه لار مونډې شی |

**قوله تعالی:: قَالُوْا يٰهُوْدُ مَا جِئْتَنَا بِبَيِّنَةٍ**

**دحضرت هود ؑ دعوت اود قوم جواب:-** د هود ؑ قوم د خپل نبی ؑ نصیحت واوریدو نو جواب نی ورکړو چه ته د کوم څیز طرف ته مونږ راغواړې د هغې خو څه دلیل او حجت تا مونږ ته راوړې نه دې. اود دې دکولو نه مونږ خلاص یو چه ته وائې خپل معبودان پرېږدئی او مونږ به نی نه پرېږدو اونه مونږ تا رښتونې منونکی یو او نه په تا باندې ایمان راوړونکی یو. بلکه زمونږ خیال خودا دې چه ته مونږ زمونږ ددې معبودانو نه منع کوې او په هغوی باندې عیبونه لګوې په دې وجه د هغوی د غصې د وجه نه په تا باندې د هغوی غضب شوې دې. ستا عقل کار نه کوی.

**د هود ؑ استقامت او بهادری::** دې اوریدو سره د الله ﷻ نبی ؑ او ونیل که چرې خبره دا وی نو زه تاسو اوالله ﷻ ګواه جوړولو سره اعلان کوم د الله ﷻ نه سوا چه د چا چا عبادتونه کولې شی چه څه ترې کیدې شی ماته دې نقصان راورسوی ماته دې هیڅ مهلت نه راکوی او په ما دې ترس نه خوری. کوم نقصان چه ستاسو په وس کښې وی ماته نی رارسونی ماسره هیڅ کمې مه کوئې. زماتوکل د الله ﷻ په ذات دې هغه زما او ستاسو ټولو مالك دې دا ناممکن ده چه د هغه د رضا نه بغیر ماته څوك څه نقصان راورسولې شی. د ټولې دنیا سا اخستونکی دهغه په قبضه کښې دی اود هغه ملکیت دې. هیڅ څوك نشته چه دهغه د ملك نه بهر شی اودهغه دبادشاهئی نه جدا شی. هغه ظالم نه دې چه ستاسو منصوبې

پوره کیدو ته پرېږدي هغه په صحیح لار دي.دبندیکانو واکې دهغه په لاس کښې دی په مؤمنانو باندې د هغه نه هم زیات مهربان دې چه کومه مهرباني د مورپلار په اولاد باندې وی. هغه کریم دې اود هغه د کرم څه حد نشته هم په دې وجه بعضې خلق اوخونیږي او غافل شی.

**د هود ﷺ بیان ټول د توحید نه ډک دې** ::دحضرت هود ﷺ په دې فرمان باندې بیا غوراوکړئ چه هغه د عادیانود پاره په خپل دې قول کښې د الله ﷻ د توحید ډیر دلیلونه بیان کړيدی. وئ خودل چه کله د الله ﷻ نه بغیرېل څوک نفع نقصان نه شی رسولې، کله چه د هغه نه بغیر په څه څیز باندې د چا قبضه نه شی کیدې نوبیا هم هغه یو د عبادت مستحق اوګرځیدو اود چا عبادت چه دهغه نه بغیرتاسو کوئې هغه ټول باطل اوګرځیده. الله ﷻ د دې نه پاك دې ملك تصرف قبضه او اختیار هم د هغه دې، ټول د هغه په ماتحتئ کښې دی د هغه نه بغیر بل څوک معبود نشته.

| فَإِنْ تَوَلَّوْا فَقَدْ |
|---|
| نو که چرې \| مخ واوړوئ تاسو \| نو په تحقیق سره |
| نو که تاسو |
| أَبْلَغْتُكُمْ مَّآ أُرْسِلْتُ بِهِۦٓ إِلَيْكُمْ ۚ |
| دراورسوو ما تا سو ته \| هغه پیغام \| چې رالیږلې شوې ووم زۀ \| په هغې سره \| تاسو ته |
| مخونه واړول نوواړوئ \| یقینا ما درته هغه پیغام دراورسولو \| د کوم د پاره چه زۀ تاسو ته رالیږلې شوې |
| وَيَسْتَخْلِفُ رَبِّى قَوْمًا غَيْرَكُمْ وَلَا تَضُرُّونَهُۥ |
| اورابه ولې ستاسوپه ځای \| رب زما \| یو قوم \| غیرله تاسو نه \|\| او تاسو به ضرر اونۀ رسولې شئ هغه ته |
| یم او زما پروردګار به ستاسو په ځای یو بل قوم اباد کړی \| اوتاسو هغه ته هیڅ نقصان نشئ رسولې |
| شَيْـًٔا ۚ إِنَّ رَبِّى عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ حَفِيظٌ ۝ وَلَمَّا جَآءَ أَمْرُنَا |
| هیڅ شئ \| بیشکه \| رب زما \| د هر څیز \| ساتونکې دې \| اوهرکله چې \| راغې \| حکم زمونږه |
| ..........زما پروردګار دهرڅیز نګهبان دې \|\| اوڅه وخت چې زمونږ حکم راغلو نو مونږ |
| نَجَّيْنَا هُودًا وَالَّذِينَ ءَامَنُوا مَعَهُۥ بِرَحْمَةٍ |
| نونجات ورکړومونږه \| هود ته \| او هغه کسانو ته \| چې ایمان ئې راوړې وو \| د هغه سره \| په رحمت سره |
| حضرت هود ﷺ او د هغه ایماندار ملګری پخپل فضل سره بچ کړل \| ................ |
| مِّنَّا وَنَجَّيْنَٰهُم مِّنْ عَذَابٍ غَلِيظٍ ۝ وَتِلْكَ عَادٌ ۖ |
| دطرفه خپل نه \|\| او نجات ورکړو مونږ هغوئ ته \| د عذاب \| سخت نه \| او دغه \| عادیان دی |
| اومونږ هغوی د ډیر سخت عذاب نه بچ کړل \| او دغه عادیان وو \| چې |
| جَحَدُوا بِـَٔايَٰتِ رَبِّهِمْ وَعَصَوْا رُسُلَهُۥ وَاتَّبَعُوٓا |
| چې انکار اوکړو هغوئ \| د آیتونو \| د رب خپل نه \| اونافرمانې ئې اوکړه \| درسولانو دهغه نه \|\| اوتابعداری ئې اوکړه |
| د خپل پروردګار د نښو نه ئې انکار اوکړو \| اود هغه د پیغمبرانو نافرمانی ئې اوکړه \| او د هر ظالم او |

| |
|---|
| أَمْرَ كُلِّ جَبَّارٍ عَنِيدٍ ۝ وَأُتْبِعُوا فِي هَٰذِهِ الدُّنْيَا لَعْنَةً |
| دحکم \| د هر سرکشه \| جګړه مار \| او اولړولي شو په هغوئ پسې \| په دنیا کښې(هم) \| لعنت |
| اودهر سرکشه دحکم تابعداري ئې اوکړه \| آخر دا چې په دې دنیا کښې هم لعنتي شو.......... |
| وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ ۗ أَلَا إِنَّ عَادًا كَفَرُوا رَبَّهُمْ ۗ أَلَا بُعْدًا |
| اوپه ورځ دقیامت هم \| خبردار \| بیشکه عادیانو \| کفر اوکړو \| د رب خپل \| خبردار \| لرې والي دې |
| او دقیامت په ورځ به هم لعنتي وي \| واورئ چې قوم عاد دخپل پروردګار نه منکر شوا خبر شئ چې |
| لِعَادٍ قَوْمِ هُودٍ ۝ |
| دپاره دعادیانو\|چه قوم دهود وو\| |
| عادیان چه قوم د هود ﷺ وو(د رحمت نه)لرې پریوتل\| ﷺ |

قوله تعالی:: وَاتَّبَعُوا أَمْرَ كُلِّ جَبَّارٍ عَنِيدٍ۝

**د قوم عاد سرکشي:-** حضرت هود ﷺ فرمائي چه ما خو خپل کار پوره کړو اود الله ﷻ رسالت مې تاسو ته دراورسولو اوس که تاسو مخ اړوني او نه منئي نو ستاسو نقصان هم په تاسو دې نه چه په ما. د الله ﷻ دا قدرت شته چه هغه ستاسو ځائ هغوخلقو ته ورکړې چه د هغه توحید منی او صرف هم د هغه عبادت کوی. هغه ته ستاسو هیڅ پرواه نشته، ستاسو کفربه هغه ته هیڅ نقصان ورنه کړې شي بلکه د دې وبال هم په تاسو دې. زمارب په بندیګانو باندې شاهد دې د هغوی اقوال او افعال د هغه په نظرکښې دی.آخر په هغوی باندې د الله ﷻ عذاب راغلو.دخیر اوبرکت نه خالی دعذاب او سزا نه ډکې هواګانې په هغوی راغلې. هغه وخت حضرت هود ﷺ اود هغه د مسلمانانوډله د الله ﷻ په فضل اوکرم اود هغه په لطف اورحم سره خلاصې بیامونډلو د سزا ګانونه بچ شو. سخت عذاب د هغوی نه اخواکړې شو.داوو عادیان چه د الله ﷻ نه ئې کفر کړې وو اود الله ﷻ د پیغمبرانو علیهم السلام خبره ئې نه منله.

**دیونبي نه انکاردټولو نه انکار وي::** دایادساتئي چه د یونبي نافرمانۍ د ټولو انبیاؤ کراموعلیهم السلام نافرمانی ده. دوی به د هغوی منل چه په دوی کښې سرکش او ضدی وو. د الله ﷻ اود هغه د مؤمنانو بندیګانو لعنت په هغوی باندې ورپریوتلو په دې دنیا کښې هم دهغوی ذکربه لعنت سره اوکړې شو اود قیامت په ورځ هم په میدان محشرکښې د ټولو په وړاندې به په هغوی د الله ﷻ لعنت وي او آوازبه کولې شي چه عادیان د الله ﷻ منکر دی.دحضرت سدی رحمه الله قول دې چه د هغوی نه پس څومر انبیاء کرام علیهم السلام راغله ټول په هغوی هم لعنت کوی اود هغوی په ژبه د الله ﷻ لعنتونه په هغوی باندې دی.

| |
|---|
| وَإِلَىٰ ثَمُودَ أَخَاهُمْ صَالِحًا ۚ قَالَ يَا قَوْمِ |
| \|او ثمودیانو ته \| رور د هغوئ\| صالح \| اووئیل هغه\| ائي زما قومه |
| \| اوثمود(نومې قوم) ته مو دهغوئ رورصالح ﷺ |
| اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ ۖ هُوَ أَنشَأَكُم |
| بندګي اوکړئ\| د الله \| نشته تاسو د پاره \| هیڅ یو معبود \| بغیر د هغه نه \| هغه \| پیدا کړې يئ تاسو |
| اولیږلو \|هغه ورته اووئیل چې ائي زما قومه د الله عبادت کوئ اچې د هغه نه سوا بل څوک د عبادت |

| ثُمَّ | فَاسْتَغْفِرُوْهُ | فِيْهَا | وَاسْتَعْمَرَكُمْ | مِّنَ الْاَرْضِ |
|---|---|---|---|---|
| بيا | نوتاسومعافی اوغواړئ دهغه نه | په هغې کښې | او هغه اباد کړې يئ تاسو | د زمکې نه |

لائق نشته | هم هغه تاسو د زمکې نه پيدا کړې يئ | او په زمکه ئې اباد کړې يئ | نو د هغه نه معافی

| مُّجِيْبٌ ۝ | قَرِيْبٌ | رَبِّيْ | اِنَّ | اِلَيْهِ | تُوْبُوْآ |
|---|---|---|---|---|---|
| قبلونکې د دعا دې | نزدې دې | رب زما | بيشکه | هغه ته | توبه اوباسئ |

اوغواړئ ابيا ورته توبه اوباسئ | بيشکه زما رب (هرچاته) نزدې او دعا قبلونکې دې |

**قوله تعالى: قَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ**

**دحضرت صالح ﷺ د توحيد دعوت:** صالح ﷺ ثمود يانو ته د الله ﷻ رسول جوړ کړې راليګلې شوې وو. قوم ته هغوی د الله ﷻ عبادت کولو اود نورو د عبادت نه دمنع کولو نصيحت کولو. وائی چه د انسان دشروع نه پيدائش الله ﷻ د خاورې نه کړې دې، ستاسو د ټولو پلارآدم ﷺ د خاورې نه پيداشوې وو. الله ﷻ په خپل فضل سره تاسوپه زمکه باندې ميشته کړئ. په دې کښې ژوند تيروئ. تاسو له د الله ﷻ نه استغفارکول پکار دی. د هغه طرف ته تيتبدل پکار دی. هغه ډير نيزدې دې او قبلونکې دې.

| اَتَنْهٰنَآ | قَبْلَ هٰذَآ | مَرْجُوًّا | فِيْنَا | يٰصٰلِحُ قَدْ كُنْتَ | قَالُوْا |
|---|---|---|---|---|---|
| آيا تهٔ منع کوې مونږه | مخکښې اددې نه | طمعې آسرا | په مونږکښې | ائې صالحه بيشکه وې تهٔ | هغوئ اوونيل |

هغوئ اووئيل چې ائې صالح ﷺ ! ددې نه مخکښې ستا نه زمونږ ډيرې طمعې وې آيا تهٔ مونږ د هغه

| وَاِنَّنَا | اٰبَآؤُنَا | يَعْبُدُ | مَا | اَنْ نَّعْبُدَ |
|---|---|---|---|---|
| او بيشکه مونږه | پلارانو زمونږه | چې عبادت به ئې کولو | دهغې | چې عبادت اوکړو مونږه |

بتانو د عبادت نه منع کوئ اچې زمونږ پلار نيکه ئې عبادت کولو او مونږ خو ستا.

| مُرِيْبٍ ۝ | اِلَيْهِ | تَدْعُوْنَآ | مِّمَّا | لَفِيْ شَكٍّ |
|---|---|---|---|---|
| په عظيم شک کښې | هغې ته | چې تهٔ رابلې مونږه | د هغې (طريقې) نه | خامخاپه شك کښې يو |

د بلنې په حقله په ډير شک کښې په غټ تردد کښې پراتهٔ يو............

| عَلٰى بَيِّنَةٍ | اِنْ كُنْتُ | اَرَءَيْتُمْ | يٰقَوْمِ | قَالَ |
|---|---|---|---|---|
| په ښکاره شهادت سره | که چرې يم زهٔ | آيا ګورئ تاسو | ائې قومه زما | اوونيل هغه |

هغه اووئيل چې ائې زما قومه داخو اووائې اکه زهٔ دخپل پروردګار د طرفنه په يو ښکاره دليل ولاړ يم

| يَّنْصُرُنِيْ | فَمَنْ | رَحْمَةً | مِنْهُ | وَاٰتٰىنِيْ | مِّنْ رَّبِّيْ |
|---|---|---|---|---|---|
| مدد اوکړی زما | نوڅوک به | رحمت | دطرفه خپل نه | او راکړې ئې دې ماته | دطرفه درب خپل نه |

اوهغه په ما خپل رحم هم کړې وی | نو څوک به د الله ﷻ په مقابله کښې زما مدد اوکړی | که زهٔ

| غَيْرَ تَخْسِيْرٍ ۝ | فَمَا تَزِيْدُوْنَنِيْ | اِنْ عَصَيْتُهٗ | مِنَ اللّٰهِ |
|---|---|---|---|
| بې د نقصانه | نونهٔ زياتوئ تاسو ما لره | که نافرمانی اوکړم زهٔ د هغه | په مقابله د الله |

د هغه نافرمانی اوکړم | نو تاسو ماته د نقصان راړسولو نه سوا بل څه نشئ کولې..............

**قوله تعالى: أَتَنْهٰنَآ أَنْ نَّعْبُدَ مَا يَعْبُدُ اٰبَآؤُنَا**

**د ثمودیانودا وینا چه مونږد خپل پلارنیکه په دین باندې یو:** -دحضرت صالح ﷺ اودهغه دقوم په مینځ کښې چه کومې خبرې اترې اوشوې دهغې بیان کولې شي.هغوی ونیل چه ته داخبره دځلې نه مه اوباسه دې نه وړاندې خوزمونږ تانه ډیرامیدونه وو خوتا په هغه ټولو باندې اوبه واړولې اولګیانې زړې طریقې اود پلار نیکه د چال او عبادت نه مونږ اخوا کوې. زمونږ خو ستا په دې نوې لارخودنه کښې ډیر لوئ شك او شبه ده. صالح ﷺ اوفرمانیل واورنی زه په ډیر اعلی دلیل سره یم اوما سره دخپل رب نشانی ده.زماپخپله رښتونولنی باندې د زړه تسلی ده. زماسره د الله ﷻ درسالت رحمت دې. اوس که زه تاسوته ددې دعوت درنه کړم اود الله ﷻ نافرمانی اوکړم اودهغه دعبادت طرف ته تاسو راونه بلم نو څوك دی چه زما امداد به اوکړې شي اود الله ﷻ دعذابونونه به مابچ کړې شي؟زما ایمان دې چه مخلوق زما ه کار نه شي راتلې.تاسو زما دپاره صرف بې فاندې ئې.بغیرزما د نقصان نه تاسو زما هیڅ نه شنی زیاتولې.

وَيٰقَوْمِ | هٰذِهٖ نَاقَةُ اللّٰهِ | لَكُمْ | اٰيَةً | فَذَرُوْهَا | تَأْكُلْ

او ائي قومه زما | دا اوښه د الله ده | ستاسو د پاره | نښه | نو پرېږدئ هغه | چې خوری

اني زما قومه دا اوښه د الله ﷻ ده | او ستاسو دپاره نښه ده | نو پرېږدئ چې د الله ﷻ په زمکه کښې

فِيْٓ اَرْضِ اللّٰهِ | وَلَا تَمَسُّوْهَا | بِسُوْٓءٍ | فَيَأْخُذَكُمْ | عَذَابٌ

په زمکه دالله کښې | او مه رسوئ دې ته | (څه) تکلیف | ګنې نو اوبه نیسی تاسو | عذاب

ازاده څرېږی | او د بدئ لاس ورته مه اوړئ | ګنی یو نزدې عذاب به مو راونیسی

قَرِيْبٌ ۝ | فَعَقَرُوْهَا | فَقَالَ | تَمَتَّعُوْا | فِيْ دَارِكُمْ | ثَلٰثَةَ

نزدې | نو زخمی ئې کړه هغه | نو اووئیل صالح | نفع واخلئ | په کورونو خپلو کښې | درې

خو هغوئ اوښه زخمی کړه | (نو صالح ﷺ) ورته اووئیل چې پخپلو کورونو کښې بس درې ورځې

اَيَّامٍ ؕ | ذٰلِكَ وَعْدٌ | غَيْرُ مَكْذُوْبٍ ۝ | فَلَمَّا | جَآءَ | اَمْرُنَا | نَجَّيْنَا

ورځې | دا وعده ده | چې نه ده دروغ | نو هر کله چې | راغلو | زمونږه حکم | نجات ورکړو مونږ

نورې تیرې کړئ | دا یوه داسې نیته ده | چې په دې کښې معمولی دروغ نشته | نو هر کله چې زمونږ حکم

صٰلِحًا | وَّالَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | مَعَهٗ | بِرَحْمَةٍ | مِّنَّا

صالح ته | او هغه کسانو ته | چې ایمان ئې راوړې وو | دهغه سره | په رحمت سره | د طرفه خپل نه

راورسیدو | نو مونږ صالح ﷺ او د هغه مسلمانان ملګری پخپل رحمت سره بچ کړل | او دهغې ورځې

وَمِنْ خِزْيِ | يَوْمِئِذٍ ؕ | اِنَّ | رَبَّكَ | هُوَ | الْقَوِيُّ | الْعَزِيْزُ ۝ | وَاَخَذَ

اود رسوایئ | د دغې ورځې نه | بیشکه | رب ستا چې دې | هم هغه | قوی دی | غالب دې | او اونیولو

د شرم نه مو (محفوظ کړل) | بیشکه ستا پروردګار ډیر قوی او غالب دې | باقی پاتې ظالمان شو.نو

الَّذِيْنَ | ظَلَمُوا | الصَّيْحَةُ | فَاَصْبَحُوْا | فِيْ دِيَارِهِمْ | جٰثِمِيْنَ ۝

هغه کسانو لره | چې ظلم ئې کړې وو | چغې | بیا او ګرزیدل هغوئ | په کورونو خپلو کښې | پرمخې پراته

هغوی باندې یوه ناترسه چغه راغله | نو پخپلو کورونو کښې داسې پرمخې پریوتل

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| كَاَنْ لَّمْ يَغْنَوْا | فِيهَا | اَلَآ | اِنَّ | ثَمُوْدَا | كَفَرُوْا | رَبَّهُمْ |
| لکه چې نه وو اوسیدلی | په دغه ځای کښې | خبردار | بیشکه چې | ثمودیانو | انکار اوکړو | د رب خپل |

لکه چې هډو هلته اوسیدلی نه وو | او اورئ! چې ثمودیانو خپل پروردګار نه انکار کړی وو

| | | |
|---|---|---|
| اَلَا | بُعْدًا | لِّثَمُوْدَ ﴿٦٨﴾ |
| خبردار | لرې والي دې | ثمودیانو لره |

واورئ چې ثمودیان (د رحمت نه) ډیر لرې او غورزیدل|

**قوله تعالی:: وَيٰقَوْمِ هٰذِهٖ نَاقَةُ اللّٰهِ لَكُمْ اٰيَةً**

**د صالح ؑ معجزه:-** د دې ټولو آیاتونو پوره تفسیر اود ثمودیانو هلاکت اود اوښې تفصیلی واقعات په سورة اعراف کښې بیان شوی دی. دلته بیا سردوباره کولو ضرورت نشته هلته ئې اوګورئ.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَلَقَدْ | جَآءَتْ | رُسُلُنَآ | اِبْرٰهِيْمَ |
| او په تحقیق سره | راغلي | فرښتې زمونږه | ابراهیم ته |

او زمونږ فرښتې حضرت ابراهیم ؑ ته زیری ورکولو دپاره

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِالْبُشْرٰى | قَالُوْا | سَلٰمًا | قَالَ | سَلٰمٌ |
| د زیری سره | اووئیل فرښتو | په تادې سلام وی | اووئیل ابراهیم | په تاسو دې سلام وی |

ورغلې وې او ورته ئې اووئیل چې سلامت اوسې اهغه اووئیل چې تاسو هم سلامت اوسئ انو ساعت تیرنه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَمَا لَبِثَ | اَنْ جَآءَ | بِعِجْلٍ | حَنِيْذٍ ﴿٦٩﴾ | فَلَمَّا | رَاٰ |
| نو څه وخت ئې تیر نه کړو | چې راغې | د سخی | وریت کړی سره | نو هرکله چې | اولیدل ابراهیم |

وو اچې یو وریت سخې ئې ورته راوړلو.............. | کله چې ئې اوکتل چې د هغوئ لاسونه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَيْدِيَهُمْ | لَا تَصِلُ | اِلَيْهِ | نَكِرَهُمْ | وَاَوْجَسَ | مِنْهُمْ |
| لاسونه دهغوئ | چې نه رسیږی | دغه خوراك ته | ناآشنائي اوګڼړل هغوئ | او محسوسه ئې کړه (په زړه کښې) | د هغوئ نه |

ورته نه ورانږدې کیږی | شکمن شو | اود هغوی نه ئې ویره محسوس کړه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| خِيْفَةً | قَالُوْا | لَا تَخَفْ | اِنَّآ | اُرْسِلْنَآ | اِلٰى قَوْمِ لُوْطٍ ﴿٧٠﴾ | وَامْرَاَتُهٗ |
| ویره | اووئیل فرښتو | مه ویریږه | بیشکه مونږ | رالیږلی شوی یو | قوم د لوط ته | او ښځه د هغه |

هغوئ ورته اووئیل | چې مه ویریږه | مونږ د حضرت لوط په قوم پسې رالیږلی شوی یو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قَآئِمَةٌ | فَضَحِكَتْ | فَبَشَّرْنٰهَا | بِاِسْحٰقَ | وَمِنْ وَّرَآءِ |
| ولاړه وه | نو اوخندل هغې | نو زیری ورکړو مونږ هغې ته | په اسحاق سره | او روستو |

اود هغه بی بی ولاړه وه انو وې خندل نو مونږ ورته د اسحاق (نومې ځوئې) زیرې ورکړو | او په حضرت

| | | | |
|---|---|---|---|
| اِسْحٰقَ | يَعْقُوْبَ ﴿٧١﴾ | قَالَتْ | يٰوَيْلَتٰٓى | ءَاَلِدُ |
| د اسحاق نه په یعقوب سره | اووئیل هغې | اچې هائې زما کم نصیبه | ایا زهٔ به اولاد راوړم |

اسحاق ؑ پسې (دهغه ځوئې) یعقوب ؑ اهغې اووئیل چې هائې زما کم نصیبه | زهٔ به اوس ځوئې

| وَاَنَا | عَجُوْزٌ | وَّهٰذَا بَعْلِىْ | شَيْخًا | اِنَّ | هٰذَا | لَشَىْءٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او حال دا چې زه | يوه بوډۍ يم | او دا زما خاوند(هم) | بوډا دې | بېشكه | دا | خامخا يو څيز دې |
| راوړم | چې بوډۍ شوې يم | او دامې خاوند دې بوډا (سپين ږيرى) دې | | | دا خو ډېره عجيبه خبره | |

| عَجِيْبٌ﴿﴾ | قَالُوْٓا | اَتَعْجَبِيْنَ | مِنْ اَمْرِ اللّٰهِ | رَحْمَةُ اللّٰهِ |
|---|---|---|---|---|
| عجيبه | او وئيل فرښتو | ايا ته تعجب كوې | د حكم دالله نه | رحمت د الله دې |
| ده | هغوئ ورته او وئيل | ايا ته دالله ﷻ په كارونو كښې تعجب كوې | | اې د دې كور خاوندانو |

| وَبَرَكٰتُهٗ | عَلَيْكُمْ | اَهْلَ الْبَيْتِ | اِنَّهٗ | حَمِيْدٌ | مَّجِيْدٌ﴿﴾ |
|---|---|---|---|---|---|
| او بركتونه د هغه دې | په تاسو | اې خاوندانو د كور | بېشكه هغه | ستائيلې شوې دې | لوئې شان والادې |
| په تاسو دالله ﷻ رحمت او بركتونه وريږي | | | بېشكه هغه ستائيلې شوې او د لوئې شان خاوند دې | | |

**قوله تعالى:: فَمَالَبِثَ اَنْ جَآءَ بِعِجْلٍ حَنِيْذٍ﴿﴾**

**دحضرت ابراهيم عليه السلام دفرښتوميلمستياكول:** حضرت ابراهيم عليه السلام له دهغه فرښتو دميلمستيا په توګه د انسان په شكل كښې راتلل چه دقوم لوط دهلاكت د زيرى اوحضرت ابراهيم عليه السلام ته د ځوئ زيرې راوړو سره دالله ﷻ د طرف نه راغلي دي.راغې او سلام كوى اوحضرت ابراهيم عليه السلام د هغې په جواب كښې سلام كوى.دا الفاظ د پيښ سره وئيلوكښې د علم بيان مطابق ثبوت او هميشه والې مونډلې شى. د سلام نه پس حضرت ابراهيم عليه السلام د هغوى مخې ته ميلمستيا پيش كوى.دسخى غوښه كومه چه په ګرمو كانړو باندې وريته كړې وه راوړې. كله چه اوكتل چه د دې نوى ميلمنو لاس خو خوراك ته وړاندې كيږى نه نو هغه وخت د دوى نه لږ بدګمان غوندې شو او په زړه كښې ويره شان پيدا شوه. حضرت سدى ﷫ فرمائي چه د قوم لوط د هلاكت د پاره كومې فرښتې ليګلې شوې وې هغوى د ځوانانو انسانانو په شكل كښې زمكې ته راغلې.د حضرت ابراهيم عليه السلام كور ته راكوزې شوې نو هغه دوى ته په كتوكښې دهغوى ډير عزت اوتكريم اوكړواو زرئى خپل سخې راواخستو اوپه ګرمو تيګو باندې وريت كړو اوحاضر ئې كړو او پخپله هم هغوى سره په دسترخوان كيناستو. د حضرت ابراهيم عليه السلام بى بى حضرت ساره دخوراك څښاك په كار روزګاركښې اخته شوه. ښكاره خبره ده چه فرښتې خوراك نه كوى.

**دحضرت ابراهيم عليه السلام دخوراك قيمت::** هغوى دخوراك نه منع شو او وئى وئيل چه ابراهيم! مونږ چه تركومې دخوراك قيمت ورنه كړوترهغې پورې خوراك نه كوو. هغه وئيل قيمت راكړئى نو دوى وئيل چه څه قيمت دې؟ ابراهيم عليه السلام اوفرمائيل بسم الله سره خوراك شروع كړئى اوخوراك كولو نه پس الحمدلله وئيل د دې قيمت دې.حضرت جبرائيل عليه السلام حضرت ميكائيل عليه السلام ته اوكتل او خپل مينځ كښې اووئيل چه په حقيقت كښې دې ددې قابل دې چه الله ﷻ ئې خپل خليل جوړ كړى.

**د حضرت سارا د خندا سبب::** اوس هم چه هغوى خوراك شروع نه كړو نود هغه په زړه كښې قسم قسم خيالات راپيداشو.حضرت ساره بى بى اوكتل چه پخپله حضرت ابراهيم عليه السلام د هغوى په اكرام كښې يعنى دخوراك په خدمت كښې دې خوهغوى بيا هم خوراك نه كوى نود دې ميلمنو په دې عجيبه حركت باندې هغې له خندا راغله.(۱)حضرت ابراهيم عليه السلام ئې ويريدلې اوكتلو نو فرښتو اووئيل چه مه ويريږه. اود هغه د ويرې لرې كولو د پاره ئې اصل واقعه ښكاره كړه. چه مونږ انسانان نه يو فرښتې يو.

---

(۱) الطبرى:۳۸۹/۱۵.

دلوط ﷺ قوم ته رالیکلي شوي یوچه هغوی هلاك كړو.حضرت ساره د قوم لوط دهلاكت خبر خوشحاله كړه.هغه وخت دې ته یوه بله خوشخبري هم ملاؤشوه.چه ددې نااميدئي په عمر كښې به تاله بچي دركړې كيدې شي. هغې ته داهم حيرانتياوه چه په كوم قوم باندې د الله ﷻ عذاب نازليږي هغوی په پوره غفلت كښې دی. غرض دا چه فرښتوهغوی ته د اسحاق نومې بچی د پيدا كيدو زيرې دركړو اوبيا د اسحاق سره د يعقوب د كيدو هم زيرې واورولو.

**ذبيح الله اسماعيل ﷺوو نه كه اسحاق ﷺ::** ددې آيت نه په دې خبره باندې استدلال اوكړې شو چه ذبيح الله حضرت اسماعيلﷺ وو ځكه چه دحضرت اسحاقﷺ خو زيرې دركړې شوې وو اوورسره د هغه نه د اولاد كيدو هم زيرې دركړې شوې وو. په دې اوريدو باندې حضرت ساره عليهاالسلام دعاموښخو په شان حيرانتيا ښكاره كړه چه د ښځې اوخاوند په دې عمر كښې به اولاد څنګه وی؟ دا ډيره د حيرانتيا خبره ده. فرښتو وئيل د الله ﷻ په كاركښې څه حيرانتياده؟تاسو ته به هم په دې عمر كښې الله ﷻ خوئ دركړی لكه چه د دوی نه تر دې وخته پورې څه اولاد نه وو شوې. ستا د خاوند عمر هم تيرشوې دې خودالله ﷻپه قدرت كښې څه كمې نشته. هغه چه څه غواړی هغه كيږی.اې دنبی كوروداني!په تا باندې دالله ﷻ رحمتونه اوبركتونه دی تاله دهغه په قدرت كښې حيرانتيا نه دی كول پكار.الله ﷻ د تعريفونو والا او بزرګ دی.

**په رسول كريم ﷺ باندې د صلاة طريقه::** بخاری اومسلم كښې دی چه صحابه كرامو تپوس اوكړو اې د الله ﷻ رسول ﷺمونږپه تاسوباندې سلام راليګل خوزده كړه خوپه تاسويه درود څنګه درليګو نو حضورﷺ اوفرمائيل وائي ((اللهم صل على محمد وعلى آل محمد كما صليت على ابراهيم وعلى آل ابراهيم بارك على محمد و على آل محمد كما باركت على ابراهيم على آل ابراهيم انك حميد مجيد))[۱]

فَلَمَّا ذَهَبَ عَنْ إِبْرٰهِيمَ الرَّوْعُ وَجَآءَتْهُ الْبُشْرٰى يُجَادِلُنَا

نوهر كله چې | الرې شوه | د ابراهيم نه | ويره | او راغئ هغه ته | زيرې | نوجګړه ئې كوله زمونږ سره

نوهر كله چې دحضرت ابراهيم ﷺ نه ويره لاړه او زيرې ئې بيامونده نومونږ سره ئې د لوطﷺ د قوم باره

فِى قَوْمِ لُوطٍ ۞ إِنَّ إِبْرٰهِيمَ لَحَلِيمٌ أَوَّاهٌ مُّنِيبٌ ۞

په باره دلوط دقوم كښې | بيشكه | ابراهيم | خامخا صبرناك وو | په زړه نرم وو | رجوع كونكي وو(الله ته)

كښې بحث شروع كړو | بيشكه حضرت ابراهيم ﷺ ډير برداشت كولو والا ،درمن او الله ته رجوع كولو والا وو

يٰٓإِبْرٰهِيمُ أَعْرِضْ عَنْ هٰذَا ۚ إِنَّهُ قَدْ جَآءَ أَمْرُ رَبِّكَ ۚ وَإِنَّهُمْ

انې ابراهيم | مخ واوړه | د دې خبرې نه | شان دادې چې | تحقيق راغلې دې | حكم درب ستا | اوبيشكه هغوئ چې دی

او د نرم زړه مالک وو | انې ابراهيم ﷺ داخبره پريږده | ستاد پروردګار اتله فيصله شوې ده | او په

ءَاتِيهِمْ عَذَابٌ غَيْرُ مَرْدُودٍ ۞

راتلونكي دې هغوئ ته | هغه عذاب | چې نه دې واپس كيدونكي |

هغوئ به داسې عذاب راځي | چې هغه په هيڅ صورت كښې د واپس كيدو نه دی

[۱]) صحيح بخارى كتاب الدعوات باب الصلاه على النبيﷺ:۶۳۵۷، صحيح مسلم:۴۰۶، ابوداؤد:۹۷۶، ترمذى:۴۸۳، ابن ماجه:۹۰۴، دارمي:۱۳۱۶، احمد:۳/۲۴۱، مسندالطيالسى:۱۰۶۱.

قوله تعالى ::إِنَّ إِبْرٰهِيمَ لَحَلِيمٌ أَوَّاهٌ مُّنِيبٌ۝

دحضرت ابراهیم ﷺنرموالي اوصفتونه:-دمیلمنوخوراك نه كولوپه وجه دحضرت ابراهیم ﷺ په زړه كښې چه كومه ویره راغلې وه دهغه حال ښكاره كیدو په وجه هغه لرې شوه.بیا هغه د خپل خوئ د پیدا كیدو زیرې هم واوریدو.اودا هم معلومه شوه چه دافرښتې دلوط ﷺ قوم دهلاكت دپاره رالیګلې شوې دی نوهغوی اوفرمائیل كه په یوكلی كښې درې سوه مؤمنان وی نو بیا به هم هغه كلی هلاك كولی شی؟ حضرت جبرائیل ﷺ اود هغه ملګروجواب وركړوچه نه. بیانی تپوس اوكړو كه څلوېښت وی؟جواب ملاؤشو بیا هم نه. تپوس ئې اوكړو كه دیرش وی؟ اووئیلې شو چه بیا هم نه. تردې چه شمیر ئې كمولوسره د پنځو په بابت كښې تپوس اوكړو فرښتو هم دغه جواب وركړو نو بیانی د یو په نسبت باندې سوال اوكړو نو هم دغه جواب ملاؤ شو نو هغه اوفرمائیل نو بیا به د حضرت لوط ﷺ په موجودګئی كښې تاسو هغوی څنګه هلاك كوئې؟ فرښتو اووئیل چه مونږ ته هلته د حضرت لوط ﷺ د موجودګئی علم دې هغه اود هغه اولاد بغیرد هغه د ښځې نه به مونږ بچ كوو([1])اوس دهغه تسلی اوشوه او چپ شو([2]) حضرت ابراهیم ﷺ دیر بردبار نرم زړه او رجوع والا وو. د دې آیت تفسیر اول تیر شوې دې الله ﷻ د خپل پیغمبر بهترین صفتونه بیان كړی دی. د حضرت ابراهیم ﷺ د دې خبرو اترواو سفارش په جواب كښې د الله ﷻ نه ارشاداوشو چه اوس ته ددې نه سترګې پټې كړه. د الله ﷻ قضابه كېږی اوس به عذاب راځی اوهغه به واپس كولی نه شی.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَمَّا | جَآءَتْ | رُسُلُنَا | | | | |
| اواوهركله چې | راغلې | فرښتې زمونږه | | | | |
| اواوهركله چې زمونږ فرښتې | | | | | | |
| لُوطًا | سِيٓءَ | بِهِمْ | وَضَاقَ | بِهِمْ | ذَرْعًا | |
| لوط ته | نوغمژن شوهغه | په وجه د هغوئ | او تنګ شو | له دوی نه | په زړه كښې | |
| حضرت لوط ﷺ ته ورغللې نودهغوئ په ورتللو خفه شواو په زړه ئې بارشواو وې وئیل چې | | | | | | |
| وَقَالَ | هٰذَا | يَوْمٌ | عَصِيبٌ۝ | وَجَآءَهُ | قَوْمُهُ | يُهْرَعُونَ |
| او وې وئیل | دا | ورځ ده | ډیره سخته | او راغلې هغه ته | قوم د هغه | په منډه منډه |
| دانن ورځ ډیره سخته ده او دمیلمنو په راتلوسره دهغه قوم په منډه راغلو دهغوی طرف ته او هغوئ به د | | | | | | |
| إِلَيْهِ ط | وَمِن قَبْلُ | كَانُوا | يَعْمَلُونَ | السَّيِّاٰتِ ط | قَالَ | يٰقَوْمِ |
| د ده اړخ ته | او د مخكښې نه | وو هغوئ | چې كول به ئې | بدكارونه | اووئیل لوط ﷺ | اې قومه زما |
| وراندې نه بدكارئ كولې ا هغه (لوط علیه السلام) ورته اووئیل ا چې اې زما قومه | | | | | | |
| هٰٓؤُلَآءِ بَنَاتِي | هُنَّ | أَطْهَرُ | لَكُمْ | فَاتَّقُوا اللّٰهَ | وَلَا تُخْزُونِ | |
| دا ښځې لونړه زما دی | دا | ډیرې پاكې دی | ستاسو دپاره | نو او ویریږئ د الله نه | او مه رسوا كوئ ما | |
| دا زما لونړه (حاضرې) دی اهغوئ ستاسو دپاره ډیرې پاكې دی انو دالله ﷻ نه اوویریږئ او ما دخپلو | | | | | | |

[1] ) ۲۹/العنكبوت:۳۲.
[2] ) الطبری:۴۰۳/۱۵.

| لَقَدْ عَلِمْتَ | قَالُوْا | رَجُلٌ رَّشِيْدٌ | مِنْكُمْ | اَلَيْسَ | فِيْ ضَيْفِيْ |
|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه معلومه ده تاته | اوونیل هغوئ | یوسړي نیك | په تاسو کښې | آیانشته | په حق دمیلمنوزما کښې |
| هغوئ ورته اووئیل چې تهٔ | | هیڅوک شریف سړی نشته | | ایا په تاسو کښې | میلمنو په حقله مهٔ شرموئ |

| نُرِيْدُ | مَا | لَتَعْلَمُ | وَاِنَّكَ | مِنْ حَقٍّ | فِيْ بَنٰتِكَ | مَا لَنَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | چې غواړومونږه | په هغې | خامخا پوهیږې | اوبیشکه تهٔ | څه حق | په لونړوستا کښې | چې نشته زمونږ |
| | اچې مونږ په کوم نیت (راغلی یو | اوتاته داهم ښهٔ معلومه ده | | | ستا لونړو ته هیڅ حاجت نشته | ښهٔ پوهیږې اچې زمونږ |

**قوله تعالی:: قَبْلُ کَانُوْا یَعْمَلُوْنَ السَّیِّاٰتِ**

**د قوم لوط کردار:**-حضرت ابراهیم ﷺ ته دې فرښتو خپل راز ښکاره کړو او لاړې. حضرت لوط ﷺ له د هغه په زمکه کښې یا دهغه کورته لاړې.د ځوانانو ښائسته هلکانو په شکل کښې وې دې د پاره چه د لوط ﷺ د قوم پوره ازمیښت اوشي.حضرت لوط ﷺ دې میلمنوته په کتواود قوم حالت مخې ته کیدوباندې سخت خفه شو په زړه زړه کښې خفه کیدوکه چرې دوی میلمانه جوړوم نو ممکن ده چه خبرشي او خلق رامنډې کړي اوکه میلمانه ئې نه جوړوم نو دا به هم د هغوی لاس له ورشي. د خلې نه ئې هم اووتل چه دا نن ورځ ډیره هیبت ناکه ورځ ده. د قوم خلق به د خپل شیطانت نه منع نه شي. په ما کښې دهغوی د مقابلې طاقت نشته څه به کیږي؟

**لوط ﷺ پخپله زمکه کښې ووچې فرښتې راغلې::**قتاده ﷫ فرمائی چه لوط ﷺ په خپله زمکه کښې وو چه فرښتې د انسان په شکل راغلې اود هغه میلمانه جوړشو. د شرم د وجې نه خو ئې انکار اونه کړې شو اوهغوی ئې خپل کورته بوتله. په لار کښې صرف په دې نیت چه دوی به اوس هم واپس لاړشي هغوی ته اوونیل والله د دې ځایٔ د خلقو نه ډیر خراب اوخبیث خلق بل ځایٔ نشته. لږ لږې لاړو نو بیانې داعرض اوکړو. غرض دا چه ترکوره پورې رسیدلو کښې ئې څلورځل دا اووئیل.فرښتو ته هم د الله ﷻ داحکم وو چه ترکومې دهغوی نبي پخپله د هغوی بدی بیان نه کړي ترهغې پورې ئې مه هلاك کوئې.

(۱)سدی ﷫ فرمائی دحضرت ابراهیم ﷺنه چه روانې شوې نوغرمه دا فرښتې نهرسدوم ته اورسیدې. هلته د حضرت لوط ﷺ لونړه کومې چه د اوبو راوړو د پاره تلې وې ملاوشوې. هغوی د دوی نه تپوس اوکړو چه مونږ دلته چرته حصاریدې شو. هغوی ونیل چه تاسو دلته اودریږئې مونږ واپس راځو تاسو ته جواب درکوو. هغوی ویریدلې چه که دوی قوم له په لاس ورشي نو د دوی به ډیره بې عزتي اوشي. دلتهٔ په راتلو باندې پلار ته اوونیل چه د ښار په دروازه کښې یوڅو پردیسي کم عمر خلق دي چه د هغوی په شان ما ترننه پورې نه دي لیدي. لاړ شئي او هغوی راحصار کړئي ګني د قوم خلق خو به هغوی تنګوي.

د دې کلي خلقو حضرت لوط ﷺ ته ونیلي ووګوره خوك د بهر والا ته خان سره مه حصاره وه مونږ به هر څه کوو هغوی چه کله داحالت اولیدو نوغلې غوندې لاړواو هغوی ئې کورته راوستل.

**دلوط ﷺ دښځې په وجه قوم ته دمیلمنو پته اولګیده::**چاته هیڅ خبرهم اونه شو.خود لوط ﷺ بي بي چه د قوم سره ملاوشوې وه د هغې په ذریعه خبره ښکاره شوه. اوس څه اوشو هریورامنډې وهي راروان دې په خوشحالوسره په توپونو راروان دی د هغوی خو لکه چه بس هم دا خوئي خصلت جوړشوې وو چه ددې بدکارئي عادت ئې خان کښې اچولې وو. دې وخت کښې د الله ﷻ نبي دوی ته نصیحت اوکړو چه تاسودا بدخصلت پریږدئي. خپل خواهش په ښځو سره پوره کوئي.

(۱) الطبری: ۱۵/۴۰۸.

لوط ﷺ خپلې لونړه قطعا نه وې پيش کړي::( بناتی) يعني زما لونړه. داڼې خکه اوفرمانيل چه هر يو نبی لکه چه د خپل امت پلار وی[١] د قرآن کريم په بل آيت کښې دی چه دې وخت کښې هغه ونيلی وو چه مونږ خو اول تاسو منع کړې ونی ([٢]) چه خپل خان سره څوك مه راحصاروه.حضرت لوط ﷺ هغوی پوهه کړل اوددنيا اوآخرت ښيګړې هغوی ته اوخودلې او ونی فرمانيل چه ښځې ددې کار دپاره مناسب دی. هغوی سره نکاح کول اوخپل خواهش پوره کول پاك کار دې. حضرت مجاهد رحمه الله فرمانی چه دا مه ګنړنی چه هغه د خپلو لونړو متعلق دا فرمانيلی وو دانه بلکه هرنبی دخپل امت پلار وی. د قتادہ رحمه الله وغيره نه هم دا روايت دې. امام ابن جريج رحمه الله وانی چه دا هم مه ګنړنی چه حضرت لوط ﷺ ښځو سرد بغيرنکاح يوخاڼ کيدل خودلې وو. نه د هغوی مطلب د ښځو سره د نکاح کولو حکم وو. فرمانيلې چه د الله ﷻ نه اوويريږنی او زما وينا اومننې. ښځو طرف ته خپل رغبت اوکړنی او هغوی سره نکاح کولو باندې خپل حاجت ترسره کړنی. دسړو طرف ته په دې رغبت سره مه راځنی او خاص دا خو زما ميلمانه دی. زما دعزت خيال اوساتنی تاسوکښې يو هم دعقل والا نيك او لار موندونکې ښه سړې نشته؟ددې په جواب کښې دې سرکشو اوونيل چه زمونږ ښځوسره څه کارنشته. دلته هم (بناتك) يعني ستا لونړه لفظ نه مرادد قوم ښځې دی. اوتاته معلومه ده چه زمونږ اراده څه ده؟يعني زمونږ اراده دې هلکانو سره ملاويدل دی، بيا جګړه او نصيحت بې کاره دې.

قَالَ لَوْ اَنَّ لِيْ بِكُمْ قُوَّةً اَوْ اٰوِيْٓ اِلٰى رُكْنٍ شَدِيْدٍ

اوونيل لوط| کاش|چې وې زمادپاره| په تاسوباندې| طاقت| ياپناه اخستې وې ما| يوځيز محکم ته

|هغه ا وونيل هائې افسوس که زما په تاسو(خپل) وس رسيدلې ايا مې ديوې مضبوط

قَالُوْا يٰلُوْطُ اِنَّا رُسُلُ رَبِّكَ لَنْ يَّصِلُوْٓا

اوونيل هغه فرښتو|انې لوط| بيشکه مونږه| راليږلې شوې يو| د رب ستا |هرګزنشی رسيدې داخلق

جماعت سره پناه اخستې شوې (نوتاسو به ليدلی وو) |هغې( فرښتو)اووئيل انې لوط ﷺ مونږ ستا د

اِلَيْكَ فَاَسْرِ بِاَهْلِكَ بِقِطْعٍ مِّنَ الَّيْلِ وَلَا يَلْتَفِتْ مِنْكُمْ اَحَدٌ

تاته | نوبو څه | بال بچ خپل | په يوه حصه کښې | دشپې نه | اونه دې ګورې واپس | ستاسو نه | هيڅوك

پروردګار فرښتې يو|دوئ تاته نزدې کيدې هم نشی انود شپې شپې د خپل کور خلق اوباسه | اوپه

اِلَّا امْرَاَتَكَ اِنَّهٗ مُصِيْبُهَا مَآ اَصَابَهُمْ

مګرمه بوځه | ښځه ستا| بيشکه شان دادې | چې رسيدونکې دې هغې ته | هغه عذاب | چې رسيږی هغوئ ته

تاسو کښې به هيڅوک هم مخ په شا نۀ ګوری |خو (يو ازې) ستا بی بی |هغه به هم په دغې عذاب کښې

اِنَّ مَوْعِدَهُمُ الصُّبْحُ اَلَيْسَ الصُّبْحُ بِقَرِيْبٍ

بيشکه | وخت دوعدې دهغوئ |صبا دې | آيا نۀ دې | صبا | نزدې |

ګرفتاريږی | چې د انور (ټول) په کښې اخته کيږی |ددوئ دپاره تاکلې وخت سحر دې |

---

[١] ايضا:۱۵/٤١٤.

[٢] ۱۵/الحجر: ۷۰.

قوله تعالى:: لَوْ أَنَّ لِي بِكُمْ قُوَّةً أَوْ آوِي إِلَىٰ رُكْنٍ شَدِيدٍ

**د لوط عليه السلام خپل قوم کمزوري وو:-** حضرت لوط عليه السلام اوکتل چه زما نصيحت په دوی باندې اثر نه کوي نوهغوی له ئې دهمکی ورکړه که په ماکښې طاقت وې او يا زما کورنئي او قبيله زوره وره وه نوما به تاسو ته د دې شيطانت خونددرکړې وو. رسول الله ﷺ په يوحديث کښې فرمائيلی دی په لوط عليه السلام باندې دې د الله ﷻ رحمت وی چه د دغه زورور قوم پناه ئې اخستله. دې نه مراد د الله ﷻ عزوجل ذات دی. د هغوی نه پس چه بيا کوم يو پيغمبر راوليکلې شو هغه په خپل قوم ثروت کښې راوليکلې شو (۱) د هغه خفگان او پوره غم اود زړه د تنگئی په وخت کښې فرښتو خپل خان ښکاره کړو چه مونږ د الله ﷻ راليکلې شوې يو داخلق مونږ ته يا تاته نه شی رسيدې. ته دشپې په آخری حصه کښې خپل اهل وعيال واخله اود دې ځایٔ نه لاړشه. پخپله ددې تولونه شاته اوسه او نيغ په خپله لارخه. د قوم په چغو صورو اوږراگانوفريادونوته شاته هم مه گوره. إِلَّا امْرَأَتَكَ اکثر مفسرين وائی چې دا استثناء ده د مثبت نه چې هغه دا قول دې فَأَسْرِ بِأَهْلِكَ يعنی خپله ښځه مه بوزه نو ځکه فَأَسْرِ بِأَهْلِكَ به‌نصيب‌سره دې،هغه به د عذاب په وخت کښې د قوم چغې صورې اوريدو سره شاته گوری ځکه چه د الله ﷻ په قضاکښې د هغې هم هلاك کيدل دې قوم سره مقررکړی دی.په يوقراءت کښې ﴿الاامرأتك﴾ دتاپه پيښ سره هم دې. دکوموخلقو په نيز چه پيښ او زبر دواړه جائز دی د هغوی بيان دې چه د هغه بی بی هم د وتلو په وخت کښې هغوی سره وه خود عذاب نازليدو باندې د قوم چغې صورې اوريدو سره صبر نه شوه راتاوشوه اوهغوی طرف ته ئې اوکتل او د خُلې نه ئې اووتل چه افسوس زما قوم، هم دغه وخت دآسمان نه يوکاڼړی په هغې باندې هم راپريوتلو او هم هلته ډهيرې شوه.

د لوط عليه السلام د نورې تسلئی د پاره فرښتو د دې خبيث قوم د هلاکت د وخت نيزديوالې هم بيان کړو چه سحر کيدو سره به داخلق تباه کړې شی اوسحر اوس بالکل نيزدې دی.دې ظالمانود هغه کور راگير کړې وو او په تيږونو رارسيدلې وو. حضرت لوط عليه السلام په دروازه کښې ولاړوو او قوم ئې منع کولو خو چه کله هغوی په يو قسم هم اونه منله او حضرت لوط عليه السلام تنگ شو نو هم هغه وخت حضرت جبرائيل عليه السلام د کور نه راووتلو اود هغوی په مخونو باندې ئې خپل وزر اووهلو په دې سره د هغوی سترگې ړندې شوې(۲) دحضرت حذيفه بن يمان رضی الله عنه بيان دې چه پخپله به حضرت ابراهيم عليه السلام هم دې خلقوته راتلو او دوی به ئې پوهه کول چه گورئی د الله ﷻ عذاب مه اخلئی خودوی د خليل الله عليه السلام هم اونه منل. تردې چه د عذابونو د راتلو قدرتی وخت راغلو، فرښتې حضرت لوط عليه السلام له راغلې هغه دغه وخت په خپل پټی کښې کارکولو هغوی وئيل چه نن شپه مونږ ستا ميلمانه يو حضرت جبرائيل عليه السلام ته د الله ﷻ حکم شوې وو چه ترکومې حضرت لوط عليه السلام پخپله درې ځل د دې قوم د بدکارئی گواهی ورنه کړی په هغوی باندې عذاب مه راولئی. هغه چه کله دوی سره روان شو نو په روانيدوکښې اوفرمائيل چه دلته خلق دير خراب دی. داخرابې هم په هغوی کښې ننوتې ده. لږ شان لرې تلوباندې بيا اوفرمائيل آيا تاسو ته د دې کليوالود بدعمل پته شته؟ زما په علم کښې خو په مخ د زمکې ددوی نه خراب خلق نور نشته. افسوس زه تاسو چرته بوځم؟ زماقوم خود تول مخلوق نه خراب دی. دې وخت کښې حضرت جبرائيل عليه السلام فرښتوته اووئيل چه گورئی دوه ځل شو، کله چه سره د دوی خپلې دروازې ته اورسيدل نود خفگان اوغم نه په ژړاشو او وئې فرمائيل زما قوم د تول مخلوق نه خراب دې. تاسو ته څه معلومه نه ده چه دوی په کوم بدعمل کښې اخته دی په مخ د زمکې يوکلی هم ددې کلی نه خراب نشته. دې وخت کښې

(۱) صحيح بخاری کتاب احاديث الانبياء باب ﴿ولوطا إذ قال لقومه أتأتون الفاحشة﴾:۳۳۷۵، صحيح مسلم:۱۵۱، مختصرًا،ترمذی:۳۱۱٦، احمد:۳۲۲/۲، مشکل الآثار:۳۳۰، ابن حبان:۲٦۰٦.
(۲) ٥٤/القمر: ۳۷.

بیا حضرت جبرائیل ﷺ فرښتو ته اووئیل ګورئی دري خل ئی دخپل قوم په بدکارئی باندې ګواهی ورکړه یاد ساتئی اوس عذاب ثابت شو.

**د ښځې د اعلان سره ټول قوم راورسیدو::** کورته لاړل او دلته نه د هغه بودئی ښځه په اوچت خائ باندې اوختله او کپړا ئی اوخوزوله چه دې سره د کلي بدکارو رامنډې کړې. تپوس ئی اوکړوڅه خبره ده هغې وئیل چه لوط ﷺ کره میلمانه راغلي دی ما خود هغوی نه ډیر ښائسته شکل والا او ډیر خوشبو والا خلق کله هم نه دی کتلي. اوس څه وو چه دوی خوشحالئی نه لاسونه بندکړي اوپه منډو منډو د حضرت لوط ﷺ کور ته راغلل.څلورو واړو طرفونه ئی د هغه کورراګیرکړو. لوط ﷺ هغوی ته قسمونه ورکړه نصیحتونه ئی ورته اوکړه وئی فرمائیل چه ښځې ډیرې دی خوهغوی د خپل شیطانت او بدې ارادې نه منع نه شو. دې وخت کښې حضرت جبرائیل ﷺ د الله ﷻ نه د عذاب اجازت اوغوښتو الله ﷻ اجازت ورکړو هغه دخپل اصلي صورت وزر کولاؤکړو د هغه دوه وزرې دی چه په هغې موتیان ټکوهلي شوی دی. د هغه غاښونه صفا پرقیرې اود هغه تندې اوچت او لوئ دې. د مرجان په شان دانې دی کومې چه لوء لوء دی اود هغه پښې د شینکی طرف مائل دی.

حضرت لوط ﷺ ته هغوی اووئیل چه مونږ خو ستا د پروردګار رالیګلي شوي یو، دا خلق تاته نه شي رسیدلي ته په دې دروازه نه اخوا شه او بیا نی هغوی په یو وزرباندې اووهل په دې سره هغوی ړانده شو او لارې هم نه پیژندلې. حضرت لوط ﷺ خپل بال بچ واخستو او د شپې په تیاره کښې اووتلو. هم دا د الله ﷻ حکم هم وو. د محمد بن کعب سدی او قتاده ﷺ وغیره هم دا بیان دې.

| فَلَمَّا جَآءَ |
|---|
| نوهرکله چې راغي |

| اَمْرُنَا | جَعَلْنَا | عَالِيَهَا | سَافِلَهَا | وَاَمْطَرْنَا | عَلَيْهَا |
|---|---|---|---|---|---|
| حکم زمونږ | نواوګرځوو مونږه | اپورته طرف د هغه کلي | لاندي طرف د هغه کلي | اواوورول مونږه | په هغه کلي باندي |

نوکله چې زمونږ حکم اوشو نو مونږ زمکه لاندې باندې کړه اوپه هغوئ مو پرله پسې

| حِجَارَةً | مِّنْ سِجِّيْلٍ | مَّنْضُوْدٍ | مُّسَوَّمَةً | عِنْدَ رَبِّكَ |
|---|---|---|---|---|
| کانړي | چې جوړ شوی وو دپخې ختې نه | پرله پسې | چې هرکانړې نښه کړې شوې وو | په نیز د رب ستا |

د کانړو باران اوکړو ......چې ستا د پروردګار نښې پرې لګیدلې وې

| وَمَا | هِيَ | مِنَ الظّٰلِمِيْنَ | بِبَعِيْدٍ |
|---|---|---|---|
| اونه دې | دا عذاب | د ظالمانو نه | لرې |

او دغه سزا د ظالمانو نه څه لرې نۀ ده

**قوله تعالى:: فَلَمَّا جَآءَ اَمْرُنَا جَعَلْنَا عَالِيَهَا سَافِلَهَا**

**د لوط ﷺ په قوم د الله ﷻ عذاب:** -د نمر د راختو په وخت کښې په هغوی باندې د الله ﷻ عذاب راغلو. د هغوی کلي سدوم نومې لاندې باندې شو. عذاب دښکته او بره نه راپټ کړل.د آسمان نه د پخې خاورې کانړی په هغوی باندې راوریدل کوم چه سخت ډیر درانه او لوئ لوئ وو. په صحیح بخاری

شریف کښې دی چه سجین او سجیل دواړه یودی. (۱)

**د قوم لوط دهلاکت څه کیفیت وو:**:دمنضود نه مراد واړیه وارقط په قط اودیو نه پس یودې. په دې کانړو باندې قدرتی توګه باندې دهغوی نومونه لیکلي وودچادنوم به چه کانړې ووهم په هغه به راپریوتلو هغه د طوق په شان وو چه په سرخنی کښې ډوب شوي وو. داکانړی په هغه ښاریانو باندې هم راوریدل اود دې ځائ چه کوم خلق وو اود کلی ګوټه کښې وو په هغوی باندې هم هلته راپریوتل. په دوی کښې چه څوك کوم ځائ کښې وو هم هلته په کانړی سره هلاك شو. څوك ولاړ وو او چاسره ئی خبرې کولې نوهم هلته د آسمان نه کانړې راغلو او هغه ئی هلاك کړو. غرض دا چه په هغوی کښې یو هم بچ نه شو.حضرت مجاهد ﷫ فرمائی چه جبرائیل ﷤ دا ټول راجمع کړل د هغوی دکورونواومالونوسره ئی اوچت کړل تردې چه د هغوی د سپو آوازونه د آسمان فرښتو واوریدل. حضرت جبرائیل ﷤ د خپل ښی وزرپه غاړه باندې هغه ټول کلې اوچت کړې وو. بیائی هغوی په زمکه باندې را اولټه کړل یونی بل سره اوجنګولو او ټول په یوځل غرق کړې شو. یونیم چه کوم پاتې شوې وو د هغوی مازغه په آسمانی کانړوباندې اوچقولې شو او بې نوم اونښې کړې شو.

**د قوم لوط ټول څلورکلی وو:**: ذکردې چه ددوی څلور کلی وو په هریوکلی کښې د یولاکھ آبادی وه. په یوروایت کښې دی درې کلی وو دلوئ کلی نوم سدوم وو. دلته به کله کله حضرت خلیل الله ﷤ هم راتلو اووعظ اونصیحت به ئی کولو بیا فرمائی چه دا څیزونه د دوی نه څه لرې نه وو. د سنن په حدیث کښې دی که څوك تاسو په لواطت کولو باندې اووینې نو پاسنې او لاندینې دواړه قتل کړئی.(۲)

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَإِلَىٰ مَدْيَنَ | | | أَخَاهُمْ | | | |
| او مدین ته(مو اولیږلو) | | | رورد هغوئ | | | |
| اومدین ته مو دهغوئ رور حضرت | | | | | | |
| غَيْرُهُ | مِّنْ إِلَٰهٍ | مَا لَكُم | اعْبُدُوا اللَّهَ | يَا قَوْمِ | قَالَ | شُعَيْبًا |
| سوا دهغه نه | هیڅ یو معبود | نشته تاسودپاره | عبادت کوئ دالله | ائې زماقومه | اوونیل هغه | شعیب |
| شعیب ﷤ لیږلې وو\| هغه ورته اووئیل چې ائې زما قومه \| تاسو د الله ﷻ عبادت کوئ\|د هغه نه بغیر | | | | | | |
| بِخَيْرٍ | أَرَاكُم | إِنِّي | وَالْمِيزَانَ | الْمِكْيَالَ | وَلَا تَنقُصُوا | |
| په ښهٔ حالت کښې | وینم تاسو | بیشکه زهٔ | او تول کښې | په ناپ کښې | اومهٔ کموئ تاسو | |
| ستاسو بل معبود نشته. \|او په پیمانه او تول کښې کمې مهٔ کوئ ازهٔ وینم چې تاسو ښهٔ اسوده حال یئ | | | | | | |
| مُّحِيطٍ | يَوْمٍ | عَذَابَ | عَلَيْكُمْ | أَخَافُ | وَإِنِّي | |
| راګیرونکې نه | د ورځې | د عذابه | په تاسو باندې | ویریږم | او بیشکه زهٔ | |
| او زهٔ ستاسو په حق کښې د راګیرونکې ورځې د عذاب نه ویریږم | | | | | | |

قوله تعالى:: يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ

**شعیب ﷤ اودتوحید دعوت:**-دعربویوه قبیله چه دحجاز اوشام په مینځ کښې معان ته نیزدې اوسیده.

---

(۱) صحیح بخاری کتاب التفسیر سوره هود باب قوله ﴿وکان عرشه علی الماء﴾:٤٦٨٤.

(۲) ابوداؤد کتاب الحدود باب فیمن عمل عمل قوم لوط:٤٤٦٢، ترمذی:١٤٥٦(وسنده حسن، ابن ماجه:٢٥٦١، حاکم:٤/٣٥٥ ، احمد:١/٣٠٠، حلیه الاولیاء:٣/٣٤٣.

د هغوی دښارونونوم اودهغوی نوم مدين وو. دهغوی طرف ته دالله ﷻ نبي حضرت شعيب ﷺ راوليګلي شو. هغه په دوی کښې شريف النفس او د اوچت خاندان نه وو اوهم د دوی نه وو. ځکه ﴿أَخَاهُمْ﴾ په لفظ سره بيان شوې دې. يعني د دوی رور. هغه هم د انبياؤ کرامو د عادت او سنت په شان د الله ﷻ د اول اوتاکيدی حکم مطابق خپل قوم ته د الله ﷻ ﴿وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ﴾ د عبادت کولو حکم ورکړو. ورسره نې د ناپ تول دکمې نه منع کړل چه د چا حق مه وهئ اود الله ﷻ دا احسان نې ورته ياد کړو چه هغه تاسو خوشحاله او اسوده حال پيدا کړی نې او خپله ويره نې ښکاره کړه چه د خپلومشرکانه طريقو اودظلم حرکت نه که چرې منع نه شوئ نو ستاسو دا ښه حال به په بدحالئ سره بدل کړې شي.

| وَيٰقَوْمِ | أَوْفُوا | الْمِكْيَالَ | وَالْمِيزَانَ | بِالْقِسْطِ | وَلَا تَبْخَسُوا |
|---|---|---|---|---|---|
| او اې قومه زما | پوره ورکوئ | پيمانه | او تله | په انصاف سره | او مه کموئ |
| او اې زما قومه پيمانه او تول پوره پوره ورکوئ او خلقو ته دهغوئ په څيزونو کښې تاوان مه ورکوئ | | | | | |

| النَّاسَ | أَشْيَاءَهُمْ | وَلَا تَعْثَوْا | فِي الْأَرْضِ | مُفْسِدِينَ | بَقِيَّتُ |
|---|---|---|---|---|---|
| خلقو ته | څيزونه دهغوئ | او مه ګرځئ | په زمکه کښې | فساد کونکی | پاتې بچت شوی |
| او په زمکه کښې فساد مه کوئ | | ......................... | د الله ﷻ | (په درکړی مال کښې) | |

| اللَّهِ | خَيْرٌ | لَكُمْ | إِنْ كُنْتُمْ | مُؤْمِنِينَ | وَمَا أَنَا | عَلَيْكُمْ | بِحَفِيظٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| دالله | بهتردې | ستاسو دپاره | که چرې يئ تاسو | مومنان | اونه يم زه | په تاسو باندې | نګهبان |
| بچ شوې ګټه ستاسو دپاره ډيره بهتره ده که تاسو مومنان يئ او زه څه ستاسو نګران خونه يم مقرر شوې | | | | | | | |

قوله تعالى: وَيٰقَوْمِ أَوْفُوا الْمِكْيَالَ وَالْمِيزَانَ بِالْقِسْطِ

**قوم ته نصيحت اود عذاب نه ويريدل:-** اول نې خپل قوم دناپ تول دکمې نه منع کړو. اوس په لين دين داړو وختونو کښې پوره پوره ناپ تول کولوحکم ورکوی او په زمکه کښې دتباهئ او فساد نه منع کوی په هغوی کښې دلاړو شوکول او ډاکې اچولويد خصلتونه هم وو. دخلقو په حق وهلوسره ګټه کولونه د الله ﷻ ورکړې شوې ګټه ډيره ښه ده. د الله ﷻ دا وصيت ستاسو د پاره خيريت راوړلې دې. چه په عذاب سره ځنګه هلاک کيدل کيږی دهغې په مقابله کښې په رحمت سره باقی پاتې کيدل کيږی. په صحيح تول اوپوره ناپ سره چه کومه حلاله ګټه ملاويږی په هغې کښې برکت وی. په خبيث او طيب کښې څه برابروالې؟[1] ګورئ زه تاسو ته هروخت خونه ګورم. تاسو له د بدو پريخودل او دنيکوطرف ته راتللو کار د الله ﷻ د پاره کول پکار دی دا نه چه د دنيا د خودنې د پاره.

| قَالُوا | يٰشُعَيْبُ | أَصَلٰوتُكَ | تَأْمُرُكَ | أَنْ نَتْرُكَ | مَا |
|---|---|---|---|---|---|
| هغوئ اووئيل | اې شعيب | ايا مونځ ستا | حکم کوی تاته | چې پريږدو مونږه | هغه معبودان |
| هغوئ ورته جواب ورکړو اچې اې شعيب ﷺ ايا ستا مونځونه تاته هيله دا ښائی اچې مونږ دې | | | | | |

| يَعْبُدُ | آبَاؤُنَا | أَوْ | أَنْ نَفْعَلَ | فِي أَمْوَالِنَا | مَا |
|---|---|---|---|---|---|
| چې عبادت به نې کولو | پلارانو زمونږه | يا دا چې | اونه کړو مونږه | په مالونو خپلو کښې | هغه کار |
| هغه خدايان پريږدو اچې زمونږ پلرونو دهغوی عبادت کولو ايا څه چې مونږ په خپلو مالونو کښې کول غواړو | | | | | |

[1] ۵/المائده: ۱۰۰.

| نَشٰٓؤُا ط | اِنَّكَ لَاَنْتَ الْحَلِيْمُ الرَّشِيْدُ ۝ |
|---|---|
| چې غواړو مونږه \| بيشكه ته \| بس هم ته \| بردبار ئې \| ښه سړې ئې \| | |
| هغه پريږدو \| واقعي ته خو ډيرهوښيار او پوخ ديندار يې \| | |

قوله تعالى: قَالُوْا يٰشُعَيْبُ اَصَلٰوتُكَ

**د شعيب عليه السلام د قوم جواب چه ولې مونږ د خپل پلانيكه طريقه پريږدو:** حضرت اعمش رحمه الله فرمائى د (صلوة) نه مرادقراءت دې هغه خلقو دفضولياتو نه وائى چه ته په كښې لاښه نى چه تاته ستاقراءت حكم دركړو چه مونږ دپلار نيكه طريقه پريږدو اودخپلوزړو معبودانونه لاس واخلو اودا په كښې لابله د مزې خبره چه مونږ د خپل مال هم مالكان پاتې نه شو چه څوك څنګه غواړى په هغې كښې دې كوى راكوى. د چا په ناپ تول كښې كمې مه كوئې. حضرت حسن رحمه الله فرمائى چه والله واقعه هم دا ده چه د حضرت شعيب عليه السلام د مانځه حكم هم دغه وو چه هغه دوى د غيرالله د عبادت نه او دخلقو حقونه غصب كولو نه منع كول.[^1] امام ثورى رحمه الله فرمائى چه د هغوى ددې قول مطلب دادې چه مونږ څه غواړو په خپلو مالونوكښې به كوو دا چه زكوة ولې وركړو؟ د الله ﷻ نبى ته دوى حليم او رشيد وئيل د مسخرې او سپاكوى د پاره وو.[^2]

| قَالَ يٰقَوْمِ |
|---|
| \| اووئيل شعيب \| ائې زما قومه |
| شعيب عليه السلام اووئيل چې ائې زما |

| اَرَءَيْتُمْ | اِنْ كُنْتُ | عَلٰى بَيِّنَةٍ | مِّنْ رَّبِّىْ | وَرَزَقَنِىْ | مِنْهُ |
|---|---|---|---|---|---|
| آياوينئ تاسو \| كه يم زه \| په ښكاره دليل باندې \| دطرفه درب خپل نه \| اوراكړې ئې دې ماته \| دطرفه خپل نه | | | | | |
| قومه دا راته اووائې \| كه زه د خپل رب د طرفه په ښكاره دليل قائم يم \| او (بياهم) هغه ما ته د خپل طرفه | | | | | |

| رِزْقًا | حَسَنًا ط | وَمَآ اُرِيْدُ | اَنْ اُخَالِفَكُمْ | اِلٰى مَآ | اَنْهٰكُمْ | عَنْهُ ط |
|---|---|---|---|---|---|---|
| رزق \| ښه \| اونه لرم زه اراده \| چې مخالفت اوكړم ستاسو \| هغه كارته \| چې زه منع كوم تاسو \| د هغې نه | | | | | | |
| ښه مال روزى كړې وى \| اوزما دا نيت نه دې \| چې هغه كار اوكړم دكوم نه چې تاسو منع كوم | | | | | | |

| اِنْ اُرِيْدُ | اِلَّا | الْاِصْلَاحَ | مَا اسْتَطَعْتُ ط | وَمَا تَوْفِيْقِىْٓ | اِلَّا بِاللّٰهِ ط |
|---|---|---|---|---|---|
| نه لرم زه اراده \| مګر \| د اصلاح \| اترڅو چې طاقت كيږى زما \| اونه دې توفيق زما \| مګر د الله په مدد) | | | | | |
| زه د خپل طاقت مطابق ستاسو اصلاح كول غواړم \|..... اوزما چې څه توفيق دې هغه د الله د طرفه دې | | | | | |

| عَلَيْهِ | تَوَكَّلْتُ | وَاِلَيْهِ | اُنِيْبُ ۝ |
|---|---|---|---|
| په هغه باندې \| بهروسه كړى ده ما \| اوخاص هغه ته \| رجوع كوم زه \| | | | |
| په هغه باندې بهروسه كوم \| اوپه هر كار كښې هم هغه ته رجوع كوم \| | | | |

[^1]: الطبرى:۱۵/۴۵۱.
[^2]: الطبرى:۱۵/۴۵۳.

قوله تعالى: وَمَا تَوْفِيقِيٓ إِلَّا بِٱللَّهِ

**د شعیب ﷺ د خپل قوم په مقابله کښې په الله ﷻ باندې توکل او بهروسه:-** هغه خپل قوم ته فرماني کورنې زه دخپل رب دطرف نه په څه دلیل حجت اوبصیرت باندې قایم یم اوهم دهغه طرفته تاسو راغواړم. هغه پخپله مهربانئ سره ماته ښکلې روزي راکړې ده یعنی نبوت یارزق حلال یادادواړه. زما طریقه به دا نه وي چه پخپله د ښې خبرې حکم کوم او بیا هم پخپله ستاسو نه پټ د هغې خلاف کوم. زمامرادخودخپل طاقت مطابق اصلاح کول دي. یا زما د ارادې کامیابي د الله ﷻ په لاس کښې ده. هم په هغه باندې زما بهروسه او توکل دې او هم د هغه طرف ته رجوع ټېټېدل او توجو ده.

**د نبي داشان وي چې څوک دڅه کارنه منع کوي نوخپله هم هغه نه کوي:** په مسند احمد کښې دي چه حکیم ابن معاویه د خپل پلارنه روایت کوي چه دهغه رورمالك اوونیل اې معاویه‌ادې رسول الله ﷺ زما ګاونډیان راګیرکړي دي ته هغوی له لاړ شه هغوی سره ستا خبرې اترې هم شوې دي او تا حضورﷺ پیژنې هم نوزه هغه سره لاړم هغه ونیل زما ګاونډیان پرېږده هغوی مسلمانان شوي‌وو. حضورﷺ د هغه نه مخ واړولو. هغه په غصه شو اواودریدو ونې ونیل والله که چرې تاسو دا اوونیل نو خلق خو واني چه ته مونږ ته د یوامر حکم راکوې اوپخپله د هغې خلاف کوې. حضورﷺ اوفرمانیل چه آیا خلقو داسې خبره د خلې نه راویستې ده؟ که چرې زه داسې اوکړم نود هغې وبال دې په ما وي په هغوی باندې خو هیڅ څیز نشته لاړشه د ده ګاونډیان آزاد کړه(¹)او په یو روایت کښې دي چه دهغه د قوم خلق په څه شبه کښې راګیرکړې شوي وو.پدې باندې د قوم یوسړې راغلو دې وخت کښې حضورﷺخطبه فرمانیله دغه ونیل چه خلق واني تاسو د څیز نه منع کول کونې او پخپله هغه کوې. حضورﷺ په دې پوهه نه شو په دې وجه ئې تپوس اوکړو چه خلق څه واني.د حضرت بهزبن حکیم نیکه واني ما په مینځ کښې خبرې شروع کړې چه ډېره ښه ده چه د حضورﷺ غوږمبارك ته دا خبره اونه رسیده هسې نه چه زما د قوم باره کښې حضورﷺ د خلې مبارکې نه بددعااوباسي چه بیاهغوی ته خلاصې هم ملاؤنه شي. خو رسول اللهﷺ برابر په دې کوشش کښې وو تردې چه هغویﷺ د هغه خبره باندې پوهه شو او ونې فرمانیل چه آیا هغه داسې خبره د خلې نه اوویستله، یا په دوی کښې څوک د دې قائل شته؟ والله که چرې زه داسې اوکړم نود دې بوج اوبار به زما په ذمه وي په هغه باندې هیڅ نشته، د ده ګاونډیان پرېږدئ. (²) هم د دې قبیلې نه هغه حدیث شریف هم دې کوم چه ئې په مسند کښې راوړې دې. حضورﷺ فرماني چه کله تاسو زما نه داسې یو حدیث واورئ چه ستاسو زړه دهغې نه انکار اوکړي اوستاسو بدن اووینسته د هغې نه جداوالې اوکړي اوتاسو ګنړئ چه هغه تاسو نه ډېر لرې دې نو زه د هغې نه هم ډېر لرې یم. (³) د دې اسناد صحیح دي.

**د سلف صالحینو طریقة کار:** حضرت مسروق ﷫ واني چه یوه ښځه حضرت عبدالله بن مسعودﷺ ته راغله او ونې ونیل چه تاسو ویښته په ویښتوکښې لګول منع کونې؟هغوی اوفرمانیل او. هغې ونیل چه ستاسو د کور بعضې ښځې خوهم داسې کوي. هغه اوفرمانیل چه که چرې داسې وي نو ما د الله ﷻ د نیك بنده د وصیت حفاظت نه دې کړې. زما اراده دا نه ده چه کوم څیز نه تاسو منع کړم د هغې په خلاف هغه څیز پخپله اوکړم.(⁴)حضرت ابوسلیمان ضبی ﷫ واني چه مونږ له به د حضرت عمر بن عبدالعزیز ﷫ رسالې راتلې په کوموکښې چه به حکم احکام او ممانعت لیکلې ووا و په آخرکښې به دا

---

¹) احمد: /۴۴۷، ابوداوُد کتاب القضاء باب فی الدین هل یحبس به: ۳۶۳۱، وسنده حسن، حاکم: ۶۴۲/۳.

²) احمد: ۲/۵، ابوداوُد کتاب القضاء باب فی الدین هل یحبس: ۳۶۳۰وسنده حسن، ترمذی: ۱۴۱۷.

³) احمد: ۴۲۵/۵، وسنده صحیح، مسندالبزار: ۱۸۷، ابن حبان ۶۳

⁴) احمد: ۴۱۵/۱د۵۷

وو چه زه هم په دې کښې هغه یم چه کوم د الله ﷻ نیک بنده فرمانیلی دی چه زما توفیق هم د الله ﷻ په فضل باندې دی. هم په هغه باندې زما توکل دې او هم دهغه طرف ته زه رجوع کوم.

| | |
|---|---|
| وَيٰقَوۡمِ | لَا يَجۡرِمَنَّكُمۡ |
| اواې زما قومه | باعث دې نه کړې تاسو |

اواې زما قومه!

| شِقَاقِيۡٓ | اَنۡ يُّصِيۡبَكُمۡ | مِّثۡلُ | مَآ | اَصَابَ | قَوۡمَ نُوۡحٍ | اَوۡ قَوۡمَ هُوۡدٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مخالفت زما | چې اورسیږي تاسو ته | په مثال | د هغې | چې رسیدلې وو | قوم دنوح ته | یا قوم دهود ته |

(هسې نه چې) زما سره مخالفت تاسو دې حد ته اورسوی | چې کوم عذابونه د نوح عليه السلام او هود عليه السلام او د صالح

| اَوۡ قَوۡمَ صٰلِحٍ | وَمَا | قَوۡمُ لُوۡطٍ | مِّنۡكُمۡ | بِبَعِيۡدٍ | وَاسۡتَغۡفِرُوۡا | رَبَّكُمۡ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| یا قوم دصالح ته | اونه دې | قوم دلوط | ستاسو نه | لرې | اوبخشش اوغواړئ | د رب خپل نه |

قوم ته رسیدلی وو | هغه تاسو ته هم اورسی او د لوط عليه السلام قوم تاسو نه څه لرې نه دې | دخپل رب نه بښنه

| ثُمَّ | تُوۡبُوۡٓا | اِلَيۡهِ | اِنَّ | رَبِّيۡ | رَحِيۡمٌ | وَّدُوۡدٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بیا | توبه اوباسئ | هغه ته | بیشکه | رب زما | رحم کونکې دې | اومینه لرونکې دې |

اوغواړئ | او بیا هغه ته توبه اوباسئ | زما پروردګار مهربانه او مینه ناک دې |

قوله تعالى: وَيٰقَوۡمِ لَا يَجۡرِمَنَّكُمۡ شِقَاقِيۡٓ

**قوم ته تنبیه ورکول:-** فرمائی چه زما په دښمنئ اوبغض کښې راتلوسره تاسو په خپل کفر اوګناه باندې مه کلکیږئ ګنی نوتاسو ته به هغه عذاب دراورسی چه د تاسو نه وړاندې په داسې کارونو کونکو نازل شوې وو. خاص کردلوط عليه السلام قوم چه تاسو سره په نیزدې زمانه کښې تیرشوی دی او په نیزدې ځائ کښې هم دی. تاسو د خپلو تیرو ګناهونومعافی اوغواړئ اود مخکښې تګ د پاره د ګناهونونه توبه اوباسئ. په داسې کونکوباندې زما رب ډیر مهربان کیږی او هغوی خپل خوښ بندیګان جوړوی. ابولیلی کندی رحمه الله وائی چه ما دخپل مالک څاروې نیولې ولاړ ووم، خلقو دحضرت عثمان رضي الله عنه کور راګیر کړې وو. هغوی دبره نه سر راښکاره کړو اودا آیت ئې تلاوت کړو اوونی فرمائیل اې زما دقوم خلقوما مه قتل کوئ که تاسوما قتل کړئ نوتاسو به داسې شئ. بیا هغوی د خپلو دوارو لاسونو ګوتې په یو بل کښې ورکړلې او ونی خودلې.

| قَالُوۡا يٰشُعَيۡبُ | مَا نَفۡقَهُ | كَثِيۡرًا | مِّمَّا | تَقُوۡلُ | وَاِنَّا | لَنَرٰىكَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| هغوئ اووئیل اې شعیب | نه پوهیږو مونږ | په ډیرو خبرو | د هغو نه | چې ته ئې کوې | اوبیشکه مونږ | خامخا وینو تا لره |

هغوئ اووئیل اې شعیب عليه السلام ! ستا په زیاتو خبرو نه پوهیږو او مونږ خو تا په خپله ډله کښې ډیر کمزورې وینو

| فِيۡنَا | ضَعِيۡفًا | وَلَوۡلَا | رَهۡطُكَ | لَرَجَمۡنٰكَ | وَمَآ |
|---|---|---|---|---|---|
| په مونږ کښې | کمزورې | اوکه چرې نه وې | ډله ستا | نوخامخابه سنګسار کړې وې مونږ ته | او نه ئې |

...... | اوکه ستا د کورنئ خاطر نه وې نو مونږ به ته په کاڼو ویشتې وې | او ته په

| عَلَيۡكُمۡ | أَعَزُّ | أَرَهۡطِيٓ | يَٰقَوۡمِ | قَالَ | بِعَزِيزٖ ۝ | عَلَيۡنَا | أَنتَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| په تاسو | زياته غزتمنده ده | آيا ډله زما | اې قومه زما | اووئيل شعيب | غالب | په مونږ باندې | نه |

مونږ غالب نه يې | هغه (شعيب ﷺ) اووئيل اې زما قومه آيا زما خاندان ستاسو په نظر کښې

| بِمَا | رَبِّي | إِنَّ | وَرَآءَكُمۡ ظِهۡرِيًّاۖ | وَٱتَّخَذۡتُمُوهُ | مِّنَ ٱللَّهِۖ |
|---|---|---|---|---|---|
| په هغه کارونو | رب زما | بيشکه | روستو د شاګانو خپلو نه غورزولې شوې | او اونيوۀ تاسو دغه الله | دالله نه |

دالله ﷻ نه زيات عزتمند دې | حال دا چې تاسو هغه (الله ﷻ) شاته پريخودې دې | بيشکه زما پروردګار

| مُحِيطٞ ۝ | تَعۡمَلُونَ |
|---|---|
| احاطه کونکې دې | | چې کوئ ئې تاسو |

ستاسو په ټولو کارونو احاطه کړې ده |

**قوله تعالى:: قَالَ يَٰقَوۡمِ أَرَهۡطِيٓ أَعَزُّ عَلَيۡكُم مِّنَ ٱللَّهِۖ**

**شعيب ﷺ اود الله ﷻ لوئي:-** قوم مدين اووئيل اې شعيب ﷺ! ستا اکثر خبرې زمونږ په پوهه کښې نه راځي او پخپله ته هم په مونږ کښې ډيرزيات کمزورې ئې. دسعيد رحمه الله وغيره وينا ده چه د هغوی نظرکم وو او هغه ډير صفاوينا کونکې وو ترديې چه هغوی ته دخطيب الانبياء کرام لقب حاصل وو([1]) سدی رحمه الله وائي چه په دې وجه ئې ورته کمزورې اووئيل چه هغه به هم يوازې وو.مراد ددې نه د هغوی حقارت او سپکاوې وو. ځکه چه د هغه د قبيلې والا هم دهغه په دين باندې نه وو. وئيل به ئې که ستا د رورولئي لحاظ نه وو نو مونږ خو به په کاڼو وهلو وهلو ستا قصه ختمه کړې وه. يا دا چه تاته به مو په کولاؤ زره سره بد وئيل، په مونږ کښې ستا هيڅ قدر ومنزلت اوچتوالې اوعزت نشته. دې اوريدو سره هغوی اووئيل واورئې رونړو! تاسو ما د خپلوئنې په وجه پريږدئې د الله ﷻ په وجه مې نه پريږدئې نولکه چه ستا سو هير د قبيلې والا د الله ﷻ نه هم لوئ کنړې. د الله ﷻ نبي ﷺ ته په نقصان رسولوسره د الله ﷻ نه نه ويريږئې؟ افسوس تاسو د الله ﷻ کتاب شاته اوغورزوو د دې څه عظمت او اطاعت په تاسوکښې نشته. خير الله ﷻ ستاسو په حال احوال باندې خبر دې او هغه به تاسو ته پوره بدله درکوي.

| إِنِّي | عَلَىٰ مَكَانَتِكُمۡ | ٱعۡمَلُواْ | وَيَٰقَوۡمِ |
|---|---|---|---|
| بيشکه زۀ هم | په ځائې خپل | عمل کوئ | او اې قومه زما |

اِزما قومه تاسو پخپله طريقه عمل کوئ اوزه په خپله طريقه عمل

| يُخۡزِيهِ | عَذَابٞ | يَأۡتِيهِ | مَن | سَوۡفَ تَعۡلَمُونَ | عَٰمِلٞۖ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې رسوا به کړي هغه | عذاب | چې راشي هغه ته | هغه څوک | زر به معلوم شي تاسوته | عمل کونکې يم |

کونکې يم زر به درته دا معلومه شي | چې رسوا کونکې عذاب به په چا راځي.......................

| رَقِيبٞ ۝ | مَعَكُمۡ | إِنِّي | وَٱرۡتَقِبُوٓاْ | هُوَ كَٰذِبٞۖ | وَمَنۡ |
|---|---|---|---|---|---|
| انتظار کونکې يم | تاسوسره | بيشکه زۀ | او انتظار کوئ | چې هغه دروغ ويونکې دې | او هغه څوک |

اوڅوک دروغژن دې | او تاسو انتظار کوئ.......................... زۀ هم تاسو سره انتظار کونکې يم

[1]) الطبری: ۱۵/ ۴۵۸.

وَلَمَّا جَآءَ اَمْرُنَا نَجَّيْنَا شُعَيْبًا وَّالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

اوهركله چي | راغئ | حكم زمونږ | بچ كړو مونږه | شعيب | اوهغه كسان | چي ايمان ئې راوړي وو

اوهركله چي زمونږ حكم راغلو| نو شعيب ﷺ او د هغه مسلمانان ملگري مو په خپل رحمت سره بچ كړل

مَعَهٗ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا وَاَخَذَتِ الَّذِيْنَ ظَلَمُوا الصَّيْحَةُ

دهغه سره|په خپل رحمت سره | او اونيول | هغه كسان | چي ظلم ئې كړي وو| سختې چغې

او په ظالمانو باندې يوه (ناترسه) چغه راغله| او پخپلو كورونو كښې (داسې) اړولي پريوتل

فَاَصْبَحُوْا فِيْ دِيَارِهِمْ جٰثِمِيْنَ ۙ كَاَنْ لَّمْ يَغْنَوْا فِيْهَا ؕ اَلَآ

نو شول هغوئ| په كلو خپلو كښې| پرمخې پراته | لكه چي | نۀ وو اوسيدلي| په هغې كښې|......خبردار

.. .........لكه چي هلته په كښې اوسيدلي نۀ وو|........ ..واوره

بُعْدًا لِّمَدْيَنَ كَمَا بَعِدَتْ ثَمُوْدُ ۞ ع

لرې والي دې (د رحمت نه) | دپاره دمدين د خلقو| لكه چي لرې شوي وو ثموديان |

چي مدين (هم) د رحمت نه (داسې) لرې شو لكه ثموديان (چي لرې شوي وو)|

**قوله تعالى:: وَيٰقَوْمِ اعْمَلُوْا عَلٰى مَكَانَتِكُمْ اِنِّيْ عَامِلٌ ؕ**

**دشعيب ﷺ د قوم د طرف نه ناامیدي:-** كله چه د الله ﷻ نبي ﷺ د خپل قوم د ايمان راوړلو نه ناامیده شونوسترې شو اووئې فرمائيل ښه ده تاسو په خپله طريقه باندې روان شئ اوزه به په خپله طريقه باندې قايم يم. تاسو ته به ډير زر معلومه شي چه رسوا كونكې عذاب په چاباندې نازليږي؟ اود الله ﷻ په نيز باندې دروغژن كوم يو دې؟ تاسو په انتظار اوسيږئ زه هم په انتظار كښې يم. آخر په هغوی باندې هم د الله ﷻ عذاب راكوز شو. هغه وخت د الله ﷻ نبي اونورمؤمنان بچ كړې شو په هغوی باندې د الله ﷻ رحمت اوشو اوظالمان ئې تس نس كړل. هغوی سوزيدلي مړه بې حس اوحركت پاتې شو. داسې لكه چه دوی په خپلو كورونو كښې هډو آباد نه وو. اولكه چه اول دې نه وړاندې ثموديان د الله ﷻ د لعنت محل وو هم داسې دوی هم شو. ثموديان د هغوی گاونډيان وو او په كفر اوبدامنئ كښې هم د دوی په شان وو. اودا دواړه قومونه هسې هم عرب وو.

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا

او په تحقيق سره| اوليږلو مونږه

اومونږ حضرت موسی ﷺ په خپلو

مُوْسٰى بِاٰيٰتِنَا وَسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ ۙ اِلٰى فِرْعَوْنَ وَمَلَا۟ئِهٖ فَاتَّبَعُوْۤا

موسی|په نښو خپلو سره| او دليل ښكاره سره|فرعون ته |اوسردارانو دهغه ته | نوتابعداري اوكړه هغوئ

ښكاره نښو سره فرعون اود هغه سردارانو ته ليږلې وو| خو هغوئ دفرعون حكم اومنلو

اَمْرَ فِرْعَوْنَ ۚ وَمَاۤ اَمْرُ فِرْعَوْنَ بِرَشِيْدٍ ۞ يَقْدُمُ قَوْمَهٗ

دحكم د فرعون | اونۀ وو| حكم د فرعون | په نيغه لار | مخكښې به خي | د قوم خپل نه

خود فرعون حكم څه ښه نۀ وو|دقيامت په ورځ به دخپل قوم نه وړاندې روان وی

| يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ | فَاَوۡرَدَهُمُ | النَّارَ | وَبِئۡسَ الۡوِرۡدُ | الۡمَوۡرُوۡدُ |
|---|---|---|---|---|
| په ورځ دقيامت | نو ور داخل به كړي دوى | اور ته | او ډير بد ځاني دي | د كوزيدو |

نوهغوى به دوزخ ته وركوز كړي | اوهغه د كوزيدو په اعتبار ډير خراب ځاني دي ..................

| وَاُتۡبِعُوۡا | فِيۡ هٰذِهٖ | لَعۡنَةً | وَّيَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ | بِئۡسَ الرِّفۡدُ |
|---|---|---|---|---|
| او دوى پسې شو | په دي دنيا كښې | لعنت | او په ورځ دقيامت (هم) | بد انعام دي هغه |

او په دي دنيا كښې هم ورپسې لعنتونه دي | او دقيامت په ورځ به هم وي | دغه بدله (د لعنتونو) ډيره خرابه ده

| الۡمَرۡفُوۡدُ |
|---|
| چې دوى ته وركړې شو |

قوله تعالى: فَاتَّبَعُوۡۤا اَمۡرَ فِرۡعَوۡنَ

**د فرعون اطاعت نه پريخودل:**-فرعون د قبطي قوم سردار اود هغه د ډلې طرف ته الله ﷻ خپل رسول موسى عليه السلام سره دخپلو آياتونو او د ښكاره دليلونوسره راوليګلو خوهغوى د فرعون اطاعت پرينخودو او د هغه په ګمراه كړې شوې طريقه باندې هغه پسې روان وو.لكه څنګه چه هغوى دده حكم منل نه پريخودل اوهغه ئې خپل سردار ګڼړلو دغه شان به دقيامت په ورځ هم هغه پسې وي او هغه به په خپله مشرئې كښې دوى خپل ځان سره دوزخ ته بوځي او پخپله به ډبل عذاب برداشت كوى. هم دغه حال د خرابو خلقو د تابعدارئې كونكو دې هغوى به دا هم وائي چه هم دې خلقو مونږ ګمراه كړې يو ته هغوى له هغه عذاب وركړه الخ.

**قيامت كښې به د ګمراهانو شاعرانو بيرغ امراؤ القيس سره وى:**:مسند كښې دى حضور ﷺ فرمائي چه د قيامت په ورځ دجاهليت د شاعرانو جنډا به د امراؤالقيس په لاس كښې وى اوهغه به سره د دې دوزخ ته ځي[1] داور په دې عذاب باندې به دا نورزياتې وى چه دلته اوهلته په دواړوځايونوكښې به د هميشه دپاره داخلق لعنتي وى. د قيامت د ورځې لعنت سره په دوى دوه لعنتونه پريوتل. دوى نورو خلقو ته د دوزخ دعوت وركونكي امامان وو په دې وجه په دوى باندې ډبل لعنت پريوتلو.

| ذٰلِكَ | مِنۡ اَنۡۢبَآءِ | الۡقُرٰى | نَقُصُّهٗ | عَلَيۡكَ |
|---|---|---|---|---|
| دا | يو څوخبرونه دي | دكلو | چې بيانوو ئې مونږه | تا ته |

دغه يو څو كلو خبرونه مونږ تاته بيان كړل | ............

| مِنۡهَا | قَآئِمٌ | وَّحَصِيۡدٌ | وَمَا ظَلَمۡنٰهُمۡ | وَلٰكِنۡ |
|---|---|---|---|---|
| دهغه كلي خيني | ولاړ دي | او خيني ريبلي شوى دي | او ونه كړو ظلم مونږه په هغوئ باندې | خوليكن |

بعضې كلي لاتر اوسه آباد دي | او بعضې ختم شوى دي | اومونږ په هغوئ زياتي نه وو كړې | بلكه

| ظَلَمُوۡۤا | اَنۡفُسَهُمۡ | فَمَآ اَغۡنَتۡ | عَنۡهُمۡ | اٰلِهَتُهُمُ |
|---|---|---|---|---|
| ظلم كړي وو هغوئ | په ځانونو خپلو باندې | نو دفع نه كړو | د هغوئ نه | خدايانو دهغوئ |

هغوئ پخپله په خپلو ځانونو ظلم كړي وو | نو هغه معبودان ئې هيڅ پكار رانغلل | چې

[1] احمد: ۲۲۸/۲، مسند البزار: ۲۰۹۱.

| الَّتِیْ | یَدْعُوْنَ | مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ | مِنْ شَیْءٍ | لَّمَّا |
|---|---|---|---|---|
| هغه خدایان | چې رابلل به هغوئ | ماسوا د الله نه | هیڅ څیز | هر کله چې |
| دالله ﷻ نه بغیر به ئې رابلل | هر کله چې ستا د پروردګار حکم (عذاب) راغلو...... | | | |
| جَآءَ اَمْرُ رَبِّكَ | وَمَا زَادُوْهُمْ | غَیْرَ تَتْبِیْبٍ | | |
| راغئ حکم د رب ستا | او زیات نه کړل دې خدایانو هغوئ له | غیر دبربادئ نه | | |
| ........او (بلکه) هغوی ته ئې د هلاکت نه بغیر هیڅ فائده ورنکړه | | | | |

**قوله تعالی:: ذٰلِكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ الْقُرٰی**

**د وړاندینوخلق دحالات بیان:**-د انبیاء او دهغوی د امتونوواقعات بیانولوسره د الله ﷻ ارشاد دې چه دا هغه کلې والو واقعات دی کوم چه مونږ ستا په وړاندې بیانوو.په دوی د څه خلقو کلی خو اوس هم آباد دی او بعضې ختم شوی دی. مونږ هغوی په ظلم سره نه دی هلاك کړی بلکه هغوی پخپله د خپل کفر اوتکذیب په وجه په خپلو لاسونو په خپل خان باندې هلاکت واخستلو اود کومو باطلو معبودانو اسرې چه د هغوی وې په وخت باندې د هغوی هیڅ پکار رانغله بلکه د هغوی عبادت هغوی نور هم غرق کړل اود دواړو جهانو وبال په هغوی باندې راپریوتلو.

| وَكَذٰلِكَ | اَخْذُ رَبِّكَ | اِذَآ | اَخَذَ | الْقُرٰی | وَهِیَ | ظَالِمَةٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوهمدارنګې | رانیول دی د رب ستا | کله چې | اونیسی | کلی | حال دا چې وی هغه کلی | ظالمان |
| اوستا د پروردګار هم داسې نیول وی چې کله دکلو خلق راونیسی | چې هغوئ (د ګناهونو په وجه) | | | | | |
| اِنَّ | اَخْذَهٗٓ | اَلِیْمٌ | شَدِیْدٌ | | | |
| بیشکه | نیول دهغه | دردناك دی | سخت دی | | | |
| ظالمان وی | دهغه نیول دردناك او سخت دی | | | | | |

**قوله تعالی:: اِنَّ اَخْذَهٗٓ اَلِیْمٌ شَدِیْدٌ**

**د الله ﷻ نیول ډیرسخت دی:**- څنګه چه د دې ظالمانوهلاکت اوشو دغه شان چه څوك هم وی هم دا نتیجه به وینی. د الله ﷻ نیول ډیرسخت اوالمناك وی.د بخاری اومسلم په حدیث کښې دی الله ﷻ ظالمانو له وخت ورکوی او بیائی ناڅاپی راګیرکړی نو بیا مهلت نه ملاویږی بیا حضور ﷺ د دې آیت تلاوت اوکړو.([1])

| اِنَّ | فِیْ ذٰلِكَ | لَاٰیَةً | لِّمَنْ |
|---|---|---|---|
| بیشکه | په دې واقعاتو کښې | خامخا نښه دعبرت ده | دپاره دهغه چا |
| بیشکه په دې واقعاتو کښې د هغه چا د پاره نښه ده | چې د اخرت دعذاب نه | | |
| خَافَ | عَذَابَ الْاٰخِرَةِ | ذٰلِكَ یَوْمٌ | مَّجْمُوْعٌ لَّهُ |
| چې ویریږی | دعذاب داخرت نه | دا (داسې) ورځ ده | چې راجمع کړې شوی به وی په کښې |
| ویریږی | ........هغه به داسې ورځ وی | چې ټول خلق به ورته راجمع کولې شی | |

[1]) صحیح بخاری کتاب التفسیرسورة هودباب قوله (وکذلك اخذ ربك اذااخذ القری وهی ظالمة):۴۶۸۶،صحیح مسلم:۲۵۸۳، ترمذی:۳۱۰۹، ابن ماجه:۴۰۱۸،ابن حبان:۵۱۷۵، بیهقی:۹۴/۶.

| النَّاسُ | وَذٰلِكَ | يَوْمٌ | مَّشْهُودٌ | وَمَا نُؤَخِّرُهٗ |
|---|---|---|---|---|
| خلق | او هغه به | داسې ورځ وي | چې ټول به په کښې حاضر کړې شوي وي | او نه روستو کوو مونږ دغه ورځ |
| او هغه داسې ورځ ده چې به پکښې (د الله په دربار) کښې پیش کولې شي | | | | او مونږ هغه تر یو مقرري مودې پورې |

| اِلَّا | لِاَجَلٍ | مَّعْدُوْدٍ | يَوْمَ | يَاْتِ | لَا تَكَلَّمُ | نَفْسٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مګر | ایوې نیتې | شمارلې شوي پورې | په کومه ورځ | چې راشي هغه (قیامت) | نه به کوي خبرې | هیڅ نفس |
| روستو کړې ده | کله چې هغه ورځ راشي | نو هیڅوک به د الله ﷻ د اجازت نه بغیر | | | | |

| اِلَّا | بِاِذْنِهٖ | فَمِنْهُمْ | شَقِيٌّ | وَّسَعِيْدٌ |
|---|---|---|---|---|
| مګر | په اجازت د هغه سره | نو دهغوئ نه به | څه بدبخته وي | او څه نیک بخته |
| خبرې نشي کولې | نو بعضې به بدنصیبه وي | او بعضې به خوش نصیبه وي | | |

**قوله تعالى:: ذٰلِكَ يَوْمٌ مَّجْمُوْعٌ لَّهُ النَّاسُ**

**دقیامت متعلق د الله ﷻ وعده:**-د کافرانو په دې هلاکتونو او مؤمنانو په خلاصې کښې صفا دلیل دې زمونږ په دې صداقتونو کوم چه مونږ د قیامت باره کښې کړې دی په کومه ورځ چه به ټول داول او آخر خلق راجمع کولې شي یو به هم باقي نه پاتې کیږي (١) هغه ډیره درنه ورځ ده. ټولې فرښتې ټول رسولان او ټول مخلوق به حاضرېږي. حقیقي حاکم به کافي انصاف کوي.

**د قیامت د مؤخر کیدو اصل سبب:** د قیامت د واقع کیدو کښې د وخت لګیدو وجه دا ده چه رب دا خبره اول مقرر کړې ده چه ددومره مودې پورې به دنیا په بني آدم باندې آباده وي،دومره موده به په خاموشئ تیرېږي بیا به په فلانکي وخت قیامت قایمیږي په کومه ورځ چه قیامت راشي هیڅوک به هم نه وي چه د رب د اجازت نه بغیر شونډې کولاؤ کړې شي مګرچه رحمن چاته اجازت ورکړي او هغه به خبره هم صحیح کوي.(٢) ټول آوازونه به د الله رحمن ذات په وړاندې ټیټ وي. د بخاري او مسلم په حدیث شفاعت کښې دی چه په هغه ورځ به صرف رسول اللهﷺ خبرې کوي اود هغه کلام به هم صرف دغه وي یاالله سلامت اوساته (٣) یا الله سلامتي ورکړه:(٤) دمحشر په مجمع کښې خو به ډیر خلق بد وي او ډیر به نیک وي. ددې آیت په نازلیدو باندې حضرت عمرؓ تپوس کوی چه بیا یارسول اللهﷺ! زمونږ اعمال په دې بنا باندې دی د کوم نه چه اول فراغت کړې شوې دې که یا چرته په نیوې بناباندې؟ حضورﷺ اوفرمائیل چه نه بلکه په هغه حساب باندې کوم چه اول ختم شوې دې چه کوم قلم چلیدلې دی. خود هریود پاره به هغه آسان وی د کوم د پاره چه د هغه پیدائش کړې شوې دی. (٥)

| فَاَمَّا الَّذِيْنَ | |
|---|---|
| نوهر چې هغه کسان دی | |
| نوڅوک چې.......... | |

---

(١) ۱۸/الکهف:۴۷.

(٢) ۷۹/النباء:۳۸.

(٣) ۲۰/طه:۱۰۸.

(٤) صحیح بخاری کتاب الاذان باب فضل السجود:۸۰۶، صحیح مسلم:۱۸۲؛ابن ماجه: ۴۳۱۲، احمد:۱۱۶/۳.

(٥) ترمذی کتاب تفسیر القرآن باب ومن سوره هود:۳۱۱۱وهوحسن. (مسند ابویعلی)

| شَقُوْا | فَفِي النَّارِ | لَهُمْ | فِيْهَا | زَفِيْرٌ | وَّشَهِيْقٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| چي بدبخته شوانو په اور كښې به وي | اوي به هغوئ د پاره | په هغې اوركښې | چغې په نرى آوازا او چغې په غټ آواز | | |
| بدنصيبه وى هغوئ به په اور كښې پراته وى \| په هغې كښې به چغې سورې وهي | | | | | |

| خٰلِدِيْنَ | فِيْهَا | مَادَامَتِ | السَّمٰوٰتُ | وَالْاَرْضُ | اِلَّا | مَاشَآءَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| هميشه به وي | په دې حالت كښې | اترڅو چې ولاړ وي | آسمانونه | او زمكه | مگر | چې اوغواړي |
| هميشه به په كښې پراته وى اترڅو چې آسمانونه او زمكه قائم وي \| مگر دا چې ستاپروردگار خوښه شي | | | | | | |

| رَبُّكَ | اِنَّ | رَبَّكَ | فَعَّالٌ | لِّمَا | يُرِيْدُ |
|---|---|---|---|---|---|
| رب ستا | بيشكه | رب ستا | كونكې دې | دهغه كار | چې اوغواړي |
| ...... بيشكه ستاپروردگارچې د څه اراده اوكړي هغه كوي | | | | | |

قوله تعالى:: لَهُمْ فِيْهَا زَفِيْرٌ وَّشَهِيْقٌ

د دوزخيانو آواز:- د خرېه چغوكښې چه څنګه پيړ اونرې آواز وى هم داسې به د هغوى چغې وى. دا ياد ساتئى چه د عربو دمحاورو مطابق قرآن كريم نازل شوې دې. هغوى د هميشه والى محاورې هم داسې وائى چه دا دهميشه دپاره دې. تركومې چه د زمكې اوآسمان قيام دې دا هم د هغوى په محاوره كښې دى. چه دا به باقى وى او چه تركومې د شپې ورځې چكر تړلې شوې وى نود دې الفاظونه هميشه والې مراد دې نه چه قيد. دې نه علاوه دا هم كيدې شى چه د دې زمكې او آسمانه پس د آخرت په كوركښې دې نه علاوه بل آسمان اوزمكه وى نو دلته مراد جنس دې. د ابن عباس ﷺ نه روايت دې چه د هرېو جنت زمكه او آسمان شته.دې نه پس د الله ﷻ دمنشا ذكر دې.لكه آيت [اَلنَّارُ مَثْوٰكُمْ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ]كښې دى.ددې استثناء باره كښې ډير اقوال دى كوم چه په زادالمسيركښې نقل كړى دى. ابن جرير ﷫ د خالد بن معدان ضحاك قتاده او ابن سنان ﷫ دا قول خوښ كړې دې چه استثناء عائد ده موحد گناهگار ته. د بعضو سلفونه د دې په تفسيركښې ډير غريب اقوال وارد شوى دى. قتاده ﷫ فرمائى هم الله ﷻ ته د دې پوره علم دې.

| وَاَمَّا الَّذِيْنَ |
|---|
| او هر چې هغه كسان دى |
| ............اوڅوک چه خوش نصيبه |

| سُعِدُوْا | فَفِي الْجَنَّةِ | خٰلِدِيْنَ | فِيْهَا | مَادَامَتِ |
|---|---|---|---|---|
| چې نيك بخته وى | انو هغوئ به په جنت كښې وى | اهميشه به اوسى | اپه هغې كښې | اترڅو چې ولاړ وى |
| وى انو په جنت كښې به دننه وى اهميشه به په كښې اوسيږي ا ترڅو چې آسمانونه او زمكه | | | | |

| السَّمٰوٰتُ | وَالْاَرْضُ | اِلَّا مَا | شَآءَ | رَبُّكَ | عَطَآءً | غَيْرَ مَجْذُوْذٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| آسمانونه | او زمكه | بغيردهغې نه | چې اوغواړي | رب ستا | دا وركړه ده | چې نه به وى ختميدونكې |
| قائم وى امگر كه ستا دپروردگار خوښه شي (نوبدلولې شي) ادا داسې وركړه ده ا چې ختميدونكې نه ده | | | | | | |

قوله تعالی:: إِلَّا مَا شَآءَ رَبُّكَ ط

د الله ﷻ مهرباني:-د رسولانو تابعدار به په جنتونو کښې اوسيږی د کوم نه چه به ويستلې نه شی. د زمکې اوآسمان د بقا پورې به هغوی په جنت کښې وی مګرچه څوك الله ﷻ غواړی. يعنی دا خبره بذاته واجب نه ده بلکه د الله ﷻ په رضا اود هغه په اراده باندې ده. د حسن اوضحاك رحمهما الله په قول دا هم دموحد ګناهګارپه حق کښې ده هغه به څه موده په دوزخ کښې تيروی نوبيا به دهغه ځای نه راويستلې شي. دا د الله ﷻ مهربانی ده چه نه به ختميږی اونه به کميږی. دانی خکه اوفرمانيل چه چرته د مشيت د ذکر نه دا انديښنه اونه شی چه هميشه والې به نه وی. لکه څنګه چه نی د دوزخيانو د هميشه والی نه پس هم خپله رضا اوارادې طرف ته رجوع اوکړه. دا ټول د هغه حکمت اوعدل دې. مرګ به د څوان ګډ په شکل کښې راوستلې شی اوهغه به حلال کړې شی، فرمانيلې به شی چه جنتيانو! هميشه والې دې اومرګ نشته، دوزخيانو! هميشه والې دې مرګ نشته.[1]

فَلَا تَكُ | فِي مِرْيَةٍ | مِّمَّا | يَعْبُدُ | هٰٓؤُلَآءِ ط

نو ائې نبی مه کيږه ته | په شك کښې | په باره د هغه څه کښې | چې عبادت نې کوی | دا خلق

نو (زما محبوبه ﷺ) ته دهغې بتانو د عبادت په بطلان کښې هيڅ شک مه کوه | دکومو چې دا خلق عبادت کوی

مَا يَعْبُدُوْنَ | إِلَّا | كَمَا | يَعْبُدُ | اٰبَآؤُهُمْ | مِّنْ قَبْلُ ط | وَإِنَّا

نه کوی عبادت دوی | مګر | لکه چې | عبادت به کولو | پلارانو ددوی | مخکښې ددوی نه | اوبيشکه مونږه

دوی ددغې معبودانو هغه شان عبادت کوی | لکه څنګه چې به د دوی پلرونو کولو | ............او مونږ به

لَمُوَفُّوْهُمْ | نَصِيْبَهُمْ | غَيْرَ مَنْقُوْصٍ ع

پوره پوره ورکونکې يو دوی لره | حصه د دوی | چې نه به وی کمه کړې شوې.........

دوی ته خپله (دعذاب) حصه پوره پوره ورکوو | چې هيڅ کمې به په کښې نه وی........

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا | مُوْسَى الْكِتٰبَ | فَاخْتُلِفَ | فِيْهِ ط | وَلَوْلَا

اوبه تحقيق سره ورکړې وو مونږه | موسی ته کتاب | نو اختلاف اوکړې شوا په هغې کښې | او که چرې نه وه

اومونږ حضرت موسی ته کتاب ورکړو | نو په هغې کښې هم اختلاف اوکړې شو | ............ ..اوکه

كَلِمَةٌ | سَبَقَتْ | مِنْ رَّبِّكَ | لَقُضِيَ | بَيْنَهُمْ ط

خبره | مخکښې شوې | دطرفه درب ستانه | نوخامخا به فيصله شوې وه | په منځ ددوی کښې

يوه خبره ستا د پروردګار د طرفه د وړاندې نه خلاصه شوې نه وه | نو د دوی په مينځ کښې به بخوا فيصله شوې وه

وَإِنَّهُمْ | لَفِيْ شَكٍّ | مِّنْهُ | مُرِيْبٍ | وَإِنَّ

او بيشکه دا خلق | خامخا په شك کښې دی | د دې نه | په ژور شک کښې | او بيشکه

حقيقت دا دې چې دوئ د دې کتاب باره کښې په شک کښې پريشان حاله دی | .......او بيشکه

---

[1]) صحيح بخاری کتاب التفسير سوره کهيعص باب قول الله تعالی(وانذرهم يوم الحسرة): ۴۷۳۰، صحيح مسلم: ۲۸۴۹، ترمذی: ۳۱۵۶. (صحيح بخاری و مسلم)

| کُلًّا لَّمَّا | لَيُوَفِّيَنَّهُمْ | رَبُّكَ | اَعْمَالَهُمْ | اِنَّهٗ | بِمَا |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| هر یو ته کله چې وخت راشي | خامخا به پوره بدله ورکړي دوی ته | رب ستا | د عملونو ددوی | بیشکه هغه | په هغه کارونو |
| ستا پروردګار به دې ټولو ته دخپلو عملونو بدله پوره پوره ورکوی | ........بیشکه هغه (الله) |

| يَعْمَلُوْنَ | خَبِيْرٌ |
| --- | --- |
| چې دوی ئې کوی | خبردار دې |
| د دوی په ټولو کارونو ښه خبر دې | |

قوله تعالی: فَلَا تَكُ فِيْ مِرْيَةٍ مِّمَّا يَعْبُدُ هٰٓؤُلَآءِ

**د شرک د باطل کیدو نه هیڅ کله شک مه کوه:** -دمشرکانو د شرك په باطل کیدو کښې هیڅ کله پوره شك مه کوه هغوی سره بغیرد خپل پلار نیکه د بیکاره تقلیدنه بل هیڅ دلیل نشته. د هغوی نیکنی به هم په دې دنیاکښې ملاویږي او په آخرت کښې به د سخت نه سخت عذابونه وی، چه کومې د خیر اوشر وعدې دی ټولې پوره کیدونکې دی.د هغوی د عذاب مقرره حصه به هغوی ته ضرور رسي. موسی ﷺ ته مونږ کتاب ورکړو خو بیا خلقو کښې بې اتفاقی پیداشوه چا اقرار اوکړونو چا انکار اوکړو او هم د دې نبیانوغوندې حال ستا هم دی څوك به دې مني څوك به نه مني. اومونږخو وخت مقررکړې دې مونږ بغیر د حجت پوره کولو نه عذاب نه ورکوو په دې وجه دا تاخیردې ګنی هم اوس به د هغوی د ګناهونو مزه هغوی‌ته ورکړې شي. کافرانوته د الله ﷻ اود هغه د رسول ﷺخبرې غلطې معلومیږی، د دوی شك شبه نه ختمیږی. ټول به الله ﷻ راجمع کوی اود هغوی د کړوشوو عملونوبدله به ورکړې کیږی. د دې آیت ډیر قراءتونه دی: د قراءتونو معنې هم زمونږ دې ذکر شوی معنې طرف ته راګرځي.

| فَاسْتَقِمْ | كَمَآ | اُمِرْتَ |
| --- | --- | --- |
| نو(ائې نبی)مضبوط اوسه | لکه څنګه چې | حکم شوې دې تاته |
| ........نو ته په سمه لار قائم اوسه | لکه څنګه چې درته | |

| وَمَنْ | تَابَ | مَعَكَ | وَلَا تَطْغَوْا | اِنَّهٗ | بِمَا |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| او هغه څوك | چې واپس شوی دی ایمان ته | ستاسره | اومه تیریږئ د حد نه | بیشکه هغه | هغه کارونو لره |
| حکم شوی دې | اوهغه خلق دې هم قائم اوسیږی | چې توبه ئې ویستې ده | او تاسره ملګری دی | او سرکشی مه | |

| تَعْمَلُوْنَ | بَصِيْرٌ | وَلَا تَرْكَنُوْٓا | اِلَى الَّذِيْنَ | ظَلَمُوْا |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| چې تاسو ئې کوئ | لیدونکې دې | اومه مائیله کیږئ | هغه کسانوته | چې ظلم ئې کړې دې |
| بیشکه هغه ستاسو کارونه وینی ګوری | او ددې ظالمانو طرفته میلان مه کوئ | ګنی تاسو ته به هم | | |

| فَتَمَسَّكُمُ | النَّارُ | وَمَا | لَكُمْ | مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ | مِنْ اَوْلِيَآءَ |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| ګنی نواوبه رسیږی تاسوته | اور | حال دا چې نه به وی | ستاسودپاره | په مقابله دالله کښې | څوك دوست |
| (د دوزخ)اور اورسیږی | ........او دالله ﷻ نه بغیر هیڅوك ستاسو مددګار نشته دې | | | | |

| | |
|---|---|
| ثُمَّ لَا تُنْصَرُوْنَ ۞ | |
| بیا به \| اونه کړی شی امداد تاسو سره \| | |
| بیا به ستاسو هیڅ مدد نشی کولی \| | |

قوله تعالى:: إِنَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ۞
الله ﷻ د بندګانو دعمل نه خبردار دي:-په استقامت او نیغه لاربانديي همیشه والي اودثابت قدمئ هدایت الله ﷻ خپل نبی او مسلمانانوته کوی. هم دغه د ټولونه لوئ څیز دي. ورسره د سرکشئ نه منع کول کوی څکه چه هم دغه تباه کونکي څیزدي سره ددي که چرته په مشرك باندي کړي شوي وي، پروردګاردبندیګانو دعمل نه خبردار دي. مداهنت اوددین په کارونوکښي سستي مه کوني.دشرك طرفته مه ټیټیږئ اودمشرکانو په اعمالوباندي رضامندی مه ښکاره کوني.دظالمانوطرف ته مه ټیټیږئ ګنی اوربه تاسو پورې انخلي.د ظالمانو طرفداری د هغوی په ظلم باندي امداددي دا هیڅ کله هم مه کوني که داسې مو اوکړه نو څوك دي چه د الله ﷻ عذاب به تاسو نه اخوا کړي اوڅوك دی چه د هغه نه به تاسو بچ کړي.

| | |
|---|---|
| وَأَقِمِ الصَّلٰوةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ | |
| \| اوقائم کړه \| مونځ \| په دواړو طرفونو \| دورځي کښي | |
| \|اود ورځي په دواړو طرفونو کښي دمونځ پابندی کوه\|اودشپې په | |
| وَزُلَفًا مِّنَ الَّيْلِ ۚ إِنَّ الْحَسَنٰتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّاٰتِ ۚ ذٰلِكَ ذِكْرٰى | |
| اوبه څه وختونو کښي\|د شپې نه \| بیشکه نیکئ \| لرې کوی \| بدو لره \| دا \| نصیحت دي | |
| څه حصه کښي هم\|بیشکه چې نیکئ بدئ ختموی\|دا(قرآن) د نصیحت قبلونکو دپاره لوئي نصیحت دي | |
| لِلذّٰكِرِيْنَ ۞ وَاصْبِرْ فَإِنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيْعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِيْنَ ۞ | |
| دپاره دیادونکو(الله لره)\|او صبرکوه \| بیشکه الله \| نه ضائع کوی \| اجر د نیکانو خلقو | |
| .............اوصبرکوه الله ﷻ هیڅکله د نیکانو اجرنهٔ ضائع کوی | |

قوله تعالى:: إِنَّ الْحَسَنٰتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّاٰتِ ۚ
**مونځ قایمول دګناهونوکفاره ده**:-ابن عباس﷜ وغیره وائی دورځي ددواړو سرونونه مراد دسحراو مابنام مونځ دي[1]. د قتاده او ضحاك ﷺ وغیره قول دي چه د اول سر نه مراد د سحر مونځ دي دویم سر نه مراد دماسپښین اومازیګرمونځ دي. د شپې دساعتونونه د ماسخوتن مونځ مراد دي. اود مجاهد ﷺ وغیره په قول مابنام اوماسخوتن نیکئ کول دګناهونو کفاره کیږي. په سنن کښي دی حضور ﷺ فرمانی چه د کوم یو مسلمان نه ګناه اوشي بیا اودس اوکړی دوه رکعته مونځ اوکړی نو الله ﷻ دهغه ګناه معاف کوی[2] یو خل حضرت عثمان ﷜ اودس اوکړو بیاني اوفرمائیل چه دغه شان ما رسول الله ﷺ اودس کولو سره لیدلي او حضور ﷺ اوفرمائیل چه څوك زما دي اودس په شان اودس اوکړی بیا دوه رکعته مونځ اوکړی په کوم کښي چه خپل زړه سره خبري اونه کړی نو دهغه ټول وړاندینی ګناهونه

---

[1] الطبری: ۵۰۳/۱۵.
[2] ابوداؤد کتاب الوتر باب فی الاستغفار: ۱۵۲۱وسنده حسن، ترمذی: ۴۰۶، ابن ماجه: ۱۳۹۵.

معاف کولې شي(۱) په مسند کښې دي چه حضورﷺ اوبه راوغوښتې اودس ئې اوکړو بيائې اوفرمائيل زما د دې اودس په شان به رسول اللهﷺ اودس کولو بيا حضورﷺ اوفرمائيل چه څوك زما د دې اودس په شان اودس اوکړي او په ولاړه د ماسپښين مونځ اداکړي نود هغه د سحر نه واخله تردې وخته پورې ګناهونه معاف کيږي. چه بيا دمازيګرمونځ اوکړي نودماسپښين نه ترمازيګره پورې ګناه بښلې کيږي. بيا د ماښام مونځ اداکړي نود مازيګرنه واخله تر ماښامه پورې ګناهونه معاف کولې شي. بيا د ماسخوتن په مانځه د ماښام نه د ماسخوتن پورې ټول ګناهونه بښلې کيږي(۲) بيا دې اوده کيږي اوړې راوړي بيا سحر پاسيدو سره د سحر مونځ اداکولو سره د ماسخوتن نه واخله ترسحره پورې ټول ګناهونه معاف کولې شي. هم دغه دی هغه نيکئی چه بدئی لرې کوی. په صحيح حديث کښې دی چه رسول اللهﷺ فرمائی اوښائې که چرې ستا سو د کور د دروازې مخې ته يو نهر روان وی او په هغې کښې روزانه د ورځې پنځه ځل غسل کولی شی نو آيا د هغه په بدن به لږ شان څه خيرې پاتې شي؟ خلقو وئيل چرې نه.حضورﷺ اوفرمائيل چه هم دغه مثال دې دپنځو مونځونو چه ددې په ذريعه دالله ﷻد بنده خطاګانې او ګناهونه معاف کوی(۳) په صحيح مسلم کښې دی چه رسول اللهﷺ فرمائی پنځه مونځونه دجمعې مونځ اود رمضان، رمضان پورې کفاره ده. ترهغه وخته پورې چه د لويو ګناهونو نه پرهيز اوکړي(۴) په مسنداحمدکښې دی مونځ د ځان نه وړاندې خطاګانې معاف کوی.(۵)

بخاری شريف کښې دی يوسړی يوه ښځه ښکل کړه بياحضورﷺ ته دخپلې ددې ګناه پښيمانتيا ښکاره کړه په دې باندې دا آيت نازل شو. هغه وئيل چه دا صرف زما د پاره خاص دې؟ حضورﷺ جواب ورکړو چه نه بلکه زما د ټول امت د پاره هم دا حکم دې.(۶) په يوبل روايت کښې دی چه هغه اووئيل ما په باغ کښې دې ښځې سره هرڅه اوکړه او جماع مې نه ده کړې اوس زه حاضر يم تاسو چه زما د پاره کومه سزا واوروني زه به هغه برداشت کړم. حضورﷺ هغه ته هيڅ جواب ورنه کړو هغه لاړو. حضرت عمرؓ اوفرمائيل چه الله ﷻ د ده پرده کړې وه خو که ده پخپله هم د خپل نفس پرده کړې وه. حضورﷺ برابردې سړی طرف ته کتل بيائې اوفرمائيل دا واپس راوغواړئی. کله چه هغه واپس راغلو نوحضورﷺ دا آيت تلاوت کړو.په دې باندې حضرت معاذؓ تپوس اوکړو چه يارسول اللهﷺ داهم د ده دپاره دې؟ حضورﷺ اوفرمائيل چه نه بلکه د ټولو خلقو د پاره دې.(۷)

**الله ﷻ دنيا هر چا ته ورکوی خو دين هر چا ته نه  نصيب کوی:** په مسنداحمدکښې دی رسول اللهﷺ فرمائی څنګه چه په تاسوکښې رزق تقسيم شوې دې اخلاق ئې هم تقسيم کړی دی الله ﷻ خو دنيا هغه ته هم ورکوی د چانه چه خوشحاله وی او هغه ته هم ورکوی چاته چه غصه وی. خو دين صرف هغه خلقو له ورکوی چاسره چه د الله ﷻ مينه وی.يقيناً الله ﷻ هغه سره مينه ساتی.د هغه ذات قسم د چاد قدرت په لاس کښې چه زما روح دې بنده هغه وخته پورې مسلمان کيدې نه شی ترکومې چه د هغه زړه او ژبه

---

(۱) صحيح بخاری کتاب الوضوء للاثا:۱۵۹، صحيح مسلم:۲۲۶، ابوداؤد:۱۰۶، ابن ماجه: ۲۸۵،دارقطنی: ۸۳/۱.

(۲) احمد:۷۱/۱وسنده حسن، مسندالبزار:۴۰۵، مجمع الزوائد:۲۹۷/۱.

(۳) صحيح بخاری کتاب مواقيت الصلوة باب الصلوة الخمس کفارة:۵۲۸، صحيح مسلم:۶۶۷، ترمذی: ۲۸۶۸، دارمی : ۶۶۸/۱،احمد:۳۷۹/۲،ابوعوانه:۲۰/۲، ابن حبان:۱۷۲۶.

(۴) صحيح مسلم کتاب الطهارة باب الصلوات الخمس والجمعه الی الجمعه...:۲۳۳، ترمذی:۲۱۴، ابن ماجه: ۱۰۸۶، احمد ۲۲۹/۲:مسندابی عوانه:۲۰/۲،مسندالطيالسی: ۲۴۷۰،ابن حبان:۱۷۳۳.

(۵) احمد:۴۱۳///۵،المعجم الکبير:۳۸۷۹، مسندالشاميين:۱۶۳۸،مجمع الزوائد:۱۹۸/۱،وسنده حسن.

(۶) صحيح بخاری کتاب مواقيت الصلوة باب الصلوه الخمس کفارة:۵۲۶، صحيح مسلم:۲۷۶۳، ترمذی: ۳۱۴،ابن ماجه: ۴۲۴۵.

(۷) صحيح مسلم کتاب التوبه باب قول الله تعالی ﴿ان الحسنات يذهبن السيئات﴾:۲۷۶۲،ابوداؤد:۴۴۶۸،ترمذی:۳۱۱۲، مسند لطيالسی:۲۸۵،ابن حبان:۱۷۲۸.

مسلمانه شوې نه وي. او بنده تر هغه وخته پورې ايماندار نه دې تركوم وخته پورې چه د ده ګاونډي د ده د تكليف رسولو نه بې فكره شوې نه وي. خلقو تپوس اوكړو چه دا تكليفونه كوم كوم دي؟ ونې فرمائيل چه دهوكه اوظلم. واورنى چه كوم سړې حرام مال اوګټى بيا د هغې نه خرچ اوكړي الله ﷻ هغه د بركت نه محروم ساتى. كه هغه د دې نه صدقه اوكړي نو قبوله نه ده. او څومره څه چه د خپل مرګ نه بس پريږدى هغه ټول د ده د پاره د دوزخ د اور توښه ده. ياد ساتئى الله ﷻ بدى په بدئى سره نه ختموى بلكه بدى په نيكئى سره ختموى.(١)

الله ﷻ نيكى په بدئى سره ختموى ددې متعلق احاديث:: په مسنداحمدكښې دى يو سړې حضرت عمر بن خطاب ﷺ له راغلوونى ونيل چه يوه ښځه سودا اخستو له راغلې وه. افسوس چه ما هغه كوټې ته بوتله او بغيرد جماع نه مې په هغې باندې هر قسم خوند واخستو. اوس چه د الله ﷻ كوم حكم وى هغه په ما جارى كړه. حضرت عمر ﷺ اوفرمائيل كيدې شى چه د هغې خاوند حاضر نه وو؟ هغه ونيل اوجى دم دا خبره وه. هغه اوفرمائيل چه ته لاړه شه د حضرت ابوبكر ﷺ نه د دې مسئلې تپوس اوكړه. حضرت صديق اكبر ﷺ نه ئې هم دغه سوال اوكړو نوهغوى هم دحضرت عمر ﷺ په شان اوفرمائيل. بيا هغه د حضور ﷺ په خدمت كښې حاضر شو او خپل حال ئې بيان كړو. حضور ﷺ اوفرمائيل چه كيدې شى د هغې خاوند د الله ﷻ په لاركښې جهادله تلې وى؟ نود قرآن كريم دا آيت نازل شو نو هغه اوونيل چه دا صرف زما د پاره دې؟ نو حضرت عمر ﷺ د هغه په سينه لاس كيخودو اوونى فرمائيل چه نه دغه شان صرف يوازې ستا ستركې نه شې يخيدې دا د ټولوخلقو د پاره عام دې. دې اوريدوسره رسول الله ﷺ اوفرمائيل عمر ﷺ رښتونې دې(٢) ابن جريركښې دى چه هغه ښځه ماله د يودرهم كهجورو اخستو له راغلې وه. نو ما هغې ته اوونيل چه دننه په كوټه كښې ډيرې ښې كهجورې دى هغه دننه لاړه زه هم ورغلم او هغه مې ښكل كړه. بيا هغه حضرت عمر ﷺ ته لاړونوهغوى ورته اوفرمائيل چه د الله ﷻ نه اووېريږه او په خپل نفس پرده واچوه. بيا ابوبكرصديق ﷺ ته لاړه هغه هم داسې اوونيل خو ابواليسر ﷺ وائى چه مانه صبر نه شوكيدې. زه لاړم او حضور ﷺ ته مې واقعه بيان كړه. حضور ﷺ اوفرمائيل چه افسوس تاد يوغازى سړي په غيرموجودګئى كښې داسې خيانت اوكړو. ما خو چه دا واوريده نوخپل ځان مې دوزخى اوګنړلو او په زړه كښې مې دا خيال راغلو چه كاش زما دا اسلام د دې خبرې نه پس وې؟ پيغمبر ﷺ لږ شان ساعت خپل سټ مبارك ټيټ كړو نو هم په هغه وخت حضرت جبرائيل ﷺ دا آيت راوړو راغلو.(٣)

ابن جريركښې دى چه يوسړې حضور ﷺ له راغلو درخواست ئې اوكړو د الله ﷻ حدپه ماباندې جارى كړه. يوځل دوه هغه اوونيل خوحضور ﷺ ترينه مخ واړولو. كله چه مونځ ته اودريده اوحضور ﷺ د مانځه اوزګارشو نوتپوس ئې اوكړوهغه سړې چرته لاړو؟هغه ونيل حضور ﷺ! زه حاضر يم. حضور ﷺ اوفرمائيل تا په ښه شان سره اودس اوكړو؟ مونږ سره دې مونځ اوكړو؟ هغه ونيل اوجى. نوحضور ﷺ اوفرمائيل چه ته خو بس هم داسې ئې لكه چه مور د خيټې نه چه پيدا شوې وې. خبردارا بيا داسې حركت اونه كړې. الله ﷻ دا آيت نازل كړو. (٤)

**ښځه وخته مونځ سره ګناه داسې رژيږى لكه څنګه چې د اوچې پاڼې رژيږى::** د ابوعثمان رحمه الله بيان دې چه زه حضرت سلمان ﷺ سره ووم هغه د ونې يواوچ ښاخ اونيولو اووئى ښندلو نو ټولې اوچې پاڼې

---

١) احمد: ٣٨٧/١، مجمع الزوائد: ٥٣/١.
٢) احمد: ٢٤٥/١، طبرانى: ٢٩٣١، مجمع الزوائد: ٤١/٧.
٣) ترمذى كتاب تفسير القرآن ومن سورة هود: ٣١١٥ وهوحسن، نسائى: ٢٦٨.
٤) وسنده حسن.

اورژيدلي. بيا نى اوفرمائيل چه ابوعثمان ﷺ ته تپوس نه کوي چه مادا کار ولې اوکړه؟ ما ونيل چه ښه ده صاحب ونى‌فرمائيل دغه شان زمامخکښې رسول الله ﷺ کړي وو بيا نى اوفرمائيل چه کله مسلمان په ښه شان سره اودس اوکړي او پنځه وخته مونځ اوکړي نو دهغه ګناهونه داسې رژيږي لکه د اونې دا اوچې پاڼې چه رژى. بيا هغوى هم د دې آيت تلاوت اوکړو. ([1]) په مسند کښې دى رسول الله ﷺ فرمائى که هر قسم ګناه درنه اوشى نو هغې پسې نيکى کوه او هغه ورانه وه. اوخلقوسره په ښواخلاقو ملاويږه([2]) اوحديث شريف کښې دى چه کله درنه ګناه اوشى نو هغې پسې نيکى کوه ما ونيل يارسول الله ﷺ! آيا (لااله‌الاالله) ونيل هم نيکى ده. حضور ﷺ اوفرمائيل دا خوبهتره او افضل نيکى ده.([3]) په ابويعلى کښې دى چه په شپه ورځ کښې څوك کوم وخت هم (لااله‌الاالله) اووانى د هغه د عمل نامې نه بدنى ختميږى تردې پورې چه د هغې هم داسې نيکئى کيږى([4]) ددې رواوى عثمان ﷺ ضعيف دې. بزاز کښې دى يوسړى د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو، حضور ﷺ! ما خپل يوداسې خواهش نه دې پريخودې چه هغه مې پوره کړې نه وى. حضور ﷺ اوفرمائيل چه آيا ته الله يواو زماد رسالت ګواهى ورکوې؟ هغه ونيل او نو حضور ﷺ اوفرمائيل بس هم دا به په دې ټولو غالب وى.([5])

| |
|---|
| فَلَوْلَا كَانَ مِنَ الْقُرُوْنِ مِنْ قَبْلِكُمْ أُولُوْا بَقِيَّةٍ يَّنْهَوْنَ |
| نوولې نۀ وو\|دهغه قومونونه\| چې مخکښې ستاسونه وو\| خاوندان \| د عقل \| چې منع کول نې خلق |
| نودا ولې داسې اونشوه اچې ستاسو نه په رومبو امتونو کښې داسې هوښيار خلق موجودوې اچې |
| عَنِ الْفَسَادِ فِي الْأَرْضِ إِلَّا قَلِيْلًا مِّمَّنْ أَنْجَيْنَا مِنْهُمْ وَاتَّبَعَ |
| د فساد کولونه \| په زمکه کښې \| مګر لږ \| اکومو ته چې انجات ورکړو مونږه\| دهغوى نه\|اوتابعدارى اوکړه |
| خلق ئې په زمکه کښې دفساد کولو نه منع کولې اخو کم کوز کسان به په کښې وو \| کوم چې مونږ |
| الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مَا أُتْرِفُوْا فِيْهِ وَكَانُوْا |
| هغه کسانو اچې ظلم ئې کړې وو\|دهغې شه\|چې آسودګى ورکړې شوې وه هغوىٔ ته \|په هغې کښې \|اوشو هغوىٔ |
| دعذاب نه بچ کړى وو\| او کوم خلق چې ظالمان وو هغوى هم په دې خبرو پسې شول په کومو کښې چې |
| مُجْرِمِيْنَ ۝ وَمَا كَانَ رَبُّكَ لِيُهْلِكَ الْقُرٰى بِظُلْمٍ |
| نافرمان \| اونۀ دې \| رب ستا(داسې) \| چې هلاك کړى \| کلى \| په ظلم سره |
| عيش او آرام وو او هغوى ګناهګار وو\|..........اوستاپروردګار داسې نۀ دې اچې کلى (برناحقه) |
| وَأَهْلُهَا مُصْلِحُوْنَ ۝ وَلَوْ شَاءَ رَبُّكَ لَجَعَلَ |
| اوحال دا چې اوسيدونکى دهغې\| اصلاح کونکى وى\| اوکه چرې\| غوښتلې\| رب ستا \| نوګرځولې به ئې وې |
| تباه کړى\| په داسې حال کښې چې دهغې خلق دا صلاح کوشش کوى\|اوکه ستا د پروردګار خوښه شوې وې |

---

[1]) احمد:۵/۴۳۷.

[2]) احمد:۵/۲۲۸، ترمذى کتاب البروالصله باب ماجاء فى معاشرت الناس:۱۹۸۷ وهوحسن.

[3]) احمد:۵/۱۶۹.

[4]) ابويعلى:۳۶۱۱.

[5]) مسندالبزار:۳۰۶۷ وسنده صحيح، مجمع الزوائد:۱۰/۸۳.

قوله تعالى: فَلَوْلَا كَانَ مِنَ الْقُرُونِ
الله ﷻ ته رابلونکي اله:-يعني بغيرد يوڅوکسانوخلقو نه مونږ په تيره شوي زمانه کښې داسې خلق ولې نه بيامومو چه شيطانان اومنکران نې دبدو نه منع کول.هم دغه هغه خلق دی کوم چه به مونږد عذابونو نه بچ کوو.ددې دپاره الله ﷻ په دې امت کښې د يوداسې ډلې دموجودګنې قطعي اوفرضي حکم اوفرمانيلو. ارشادباری تعالی دې ﴿وَلْتَكُنْ مِّنْكُمْ أُمَّةٌ يَّدْعُونَ إِلَى الْخَيْرِ﴾ د ښيګړې اونيکئ دعوت ورکونکې ډله به تاسو کښې هر وخت موجود کيدل پکار دی.دظالمانو طريقه هم دغه ده چه هغوی د خپلو بدو عادتونو نه نه منع کيږي او هغوی د نيکو علماؤ فرمان ته توجوهم نه ورکوی. تردې چه د الله ﷻ عذاب په هغوی کښې په بې خبرئ سره راپريوزی. په نيکانو کلو باندې د الله تعالی عذاب د ظلم په توګه هيڅ کله هم نه راځي. مونږ د ظلم نه پاك يو خو هغوی په خپله په خانونوباندې ظلم کوی.

| وَلَوْ شَآءَ رَبُّكَ لَجَعَلَ |
|---|
| اوکه چرې \| غوښتلې \| رب ستا \| نوګرځولي به ئې وې |
| اوکه ستا د پروردګار خوښه شوې وی |
| النَّاسَ أُمَّةً وَّاحِدَةً وَّلَا يَزَالُوْنَ مُخْتَلِفِيْنَ ﴿۱۱۸﴾ إِلَّا مَنْ |
| ټول خلق \| جماعت \| يو \| او هميشه به وی دوئ \| اختلاف کونکی \| مګر \| هغه څوك |
| نوټول خلق به ئې يو امت کړې وې انو دوئ به اوس هميشه په اختلاف کښې پراتهٔ وی \| البته په چا |
| رَّحِمَ رَبُّكَ ؕ وَلِذٰلِكَ خَلَقَهُمْ ؕ وَتَمَّتْ |
| چې رحم اوکړی په هغه \| رب ستا \| او هم د دې د پاره \| الله دوی پيدا کړل \| او پوره شوه |
| چې ستاپروردګار رحم اوکړی \| او هم ددې (اختيار اوانتخاب) دپاره ئې دوئ پيدا کړی دی |
| كَلِمَةُ رَبِّكَ لَأَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِيْنَ ﴿۱۱۹﴾ |
| فيصله \| د رب ستا \| چې خامخا به ډکوم زهٔ \| دوزخ \| د پيريانونه \| او د انسانانو نه \| د ټولو نه |
| اوستاد پروردګار دا خبره فيصله شوې ده \| چې زهٔ به دوزخ د پيريانو اوبنی آدمو ټولو نه ډکوم |

قوله تعالى: وَلَوْ شَاءَ رَبُّكَ لَجَعَلَ النَّاسَ أُمَّةً وَّاحِدَةً
سزاخوړونکی اوخلاصې بيامونودنکی څوك دی؟دالله ﷻ قدرت ديوكار نه عاجزنه دې.که هغه اوغواړی نو ټول به په اسلام يا کفر باندې راجمع کړی خود هغه حکمت دې چه انسانی راتې د هغوی دين اومذهبونه جدا جدا جاری او ساری دی. طريقې مختلف مالی حالت جدا، يو د يو ماتحت، دلته مراد د دين او مذهب اختلاف دې. او چه په چا باندې د الله ﷻ رحم اوشی او هغه د رسولانو تابعداری د الله ﷻ د حکم په پوره کولوکښې برابر لګيا دی. اوس هغوی د نبی آخرالزمان ﷺ تابعدار دی او هم دغه خلاصې بيامونودنکی دی. په مسند او سنن کښې حديث دې د کوم چه هريو سند بل سند ته تقويت رسوی. رسول الله ﷺ فرمائی چه د يهوديانو يواويا(۷۱) ډلې شوې وې نصاری په دوواوياؤ (۷۲) فرقوکښې تقسيم شوی وو اود دې امت به دری اويا (۷۳) فرقې وی ټولې دوزخی دی بغيرد يوې فرقې نه. صحابه کرامو ﷺ تپوس اوکړو يارسول الله ﷺ هغه کوم خلق دی؟ حضور ﷺ جواب ورکړو چه څوك

په دې باندې وی په کوم چه زه یم او زما اصحاب. (۱)

**د مختلفین نه څوک مراد دی ؟::** په قول دعطاء رحمه الله ﴿مختلفین﴾ نه مرادیهود نصاری او مجوسیان دی؟ او د الله ﷻ د رحم والا ډلې نه مراد یو طرف ته د دین اسلام تابعدارخلق دی. قتاده رحمه الله وائي چه هم دغه ډله ده چه دهغوی وطن اوبدن به جدا وی. اواهل معصیت ډله بازنی اواختلاف والا دی لکه چه د هغوی وطن اوبدن به یوځائ جمع کیږي او څی. په قدرتی توګه د هغوی پیدائش هم د دې د پاره دې. د نیك بخت او بدبخت ازلی تقسیم دې (۲) اودا هم مطلب دې چه رحمت حاصلونکې هم دا ډله ده.

**ایا انسان د اختلاف دپاره پیدا شوې دې::** حضرت طاؤس رحمه الله له دووکسانو خپله جګړه راوړه راغله او د خپل مینځ په اختلاف کښې ډیر وړاندې لاړل.هغوی اوفرمائیل چه تاسو جګړې او بنه اختلاق اوکړو په دې باندې یو کس اووئیل چه مونږ خو هم د دې د پاره پیداکړې شوې یو.هغوی اوفرمائیل غلطه ده نو هغه په ثبوت کښې هم د دې آیت تلاوت اوکړو نوهغوی اوفرمائیل چه ددې د پاره نی نه نې پیداکړی چه خپل مینځ کښې اختلاف اوکړئی بلکه پیدائش خود جمع د پاره اورحمت حاصلولود پاره وی. لکه چه د ابن عباس رضي الله عنه نه روایت دې چه د رحمت دپاره نی پیداکړی یو نه چه دعذاب دپاره.او په آیت کښې دی ﴿وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ﴾ ما پیریان او انسانان هم د خپل عبادت د پاره پیدا کړیدی. دریم قول دا هم دې چه د رحمت اواختلاف د پاره نی پیداکړی یو. مالك رحمه الله د دې په تفسیرکښې فرمائی چه یوه ډله جنتی او یوه ډله دوزخی. دویډ رحمت د پاره او هغوی په اختلاف کښې د لګیاکیدود پاره پیداکړی دی. ستادرب دا فیصله ناطق ده د هغه په مخلوق کښې دادواړه قسمه خلق وی اود دې دواړونه به جنت او دوزخ ډکولې شي. دهغه کامل حکمتونه هم هغه پیژني.

**د جنت او دوزخ مکالمه::** بخاری اومسلم کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائی چه د جنت او دوزخ خبرې اترې اوشوې. جنت اووئیل چه په ماکښې خو ضعیف اوکمزورې خلق داخلیږي. او دوزخ اووئیل چه زه کبر او جبر کونکو سره مخصوص کړې شوې یم. په دې باندې الله تبارك وتعالی جنت ته اوفرمائیل ته زما رحمت نې چه څوك زه غواړم تا کښې به نی داخلوم او دوزخ ته نی اوفرمائیل ته زما عذاب نې چه څوك زه غواړم ستاپه عذاب سره به ترې انتقام اخلم. تاسو دواړه به ډکولې شنی په جنت کښې خو به برابرکمې زیاتې وی. تردې چه د دې د پاره به الله ﷻ یو نوې مخلوق پیدا کړي. او هغه به په دې کښې اوسوی. اودوزخ به هم برابر زیاتوالی غواړی تردې چه د هغې د پاسه به الله ﷻ خپل قدم کیږدی نوهله به هغه وائی چه ستا په عزت مې دې قسم وی اوس بس دې اوس بس دې.(۲)

| وَكُلًّا | نَّقُصُّ | عَلَيْكَ | مِنْ أَنبَاءِ الرُّسُلِ | مَا | نُثَبِّتُ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوداټول(خبرونه) | چې مونږ بیانوو | تاته | دخبرونود رسولانونه | دا هغه خیزدي | چې مونږه محکم کوو |
| اودپیغمبرانو په قصو کښې مونږ دا ټولې قصې تاته ښکه بیانوو چې ستازړه پرې مضبوط کړو | | | | | |

| بِهِ | فُؤَادَكَ | وَجَاءَكَ | فِي هَٰذِهِ | الْحَقُّ | وَمَوْعِظَةٌ | وَذِكْرَىٰ | لِلْمُؤْمِنِينَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| په دې سره | زړه ستا | اوراغی تاته | په دې کښې | حق | اونصیحت دي | اوبیداری ده | دپاره دمؤمنانو |
| اوپه دې قصو کښې تاته حق دراورسیدو ..........او دا د مومنانو د پاره نصیحت او عبرت دي | | | | | | | |

(۱)احمد:۳۳۲/۲، ترمذی کتاب العلم باب ماجاء فی افتراق هذه الامة:۲۶۴۱، ابوداؤد:۴۵۹۶وسنده حسن، ابن ماجه:۳۹۹۱ وسنده حسن،
(۲) ۱۱/هود:۱۰۵.

(۳)صحیح بخاری کتاب التفسیر سوره ق باب قوله ﴿وتقول هل من مزید﴾: ۴۸۵۰،صحیح مسلم:۲۸۴۶، ترمذی۲۵۶۱، مصنف عبدالرزاق:۲۰۸۹۳، احمد:۳۱۴/۲.

**قوله تعالی:: مَانُثَبِّتُ بِهٖ فُؤَادَكَ**
**د زړه تسلي**:-د وړاندینوامتونو خپل انبیاء دروغ ګڼړل د هغوی په تکلیفونو باندې صبر کول او آخر د الله ﷻ دعذابونو راتلل دکافرانوبربادیدل دنبیانو رسولانو اومؤمنانو خلاصې بیاموندل دا ټول واقعات مونږ تاته اورروو،دې دپاره چه ستا زړه مونږ نور هم مضبوط کړو اوتاته پوره سکون ملاوشي. په دې سورة کښې هم حق په تاباندې پوره واضح شو یا دا چه په دې دنیاکښې هم ستا په وړاندې ربښتوني واقعات بیان کړې شو. دا عبرت دې د کافرانود پاره اونصیحت دې د مؤمنانو دپاره هغوی دې د دې نه ګټه حاصله کړي.

| وَقُلْ | لِّلَّذِيْنَ | لَا يُؤْمِنُوْنَ | اعْمَلُوْا | عَلٰى مَكَانَتِكُمْ ط | اِنَّا |
|---|---|---|---|---|---|
| او اووایه | هغه کسانوته | چې نه راوړی ایمان | چې عمل کوئ تاسو | په خپل ځائ | بیشکه مونږ(هم) |
| چې ایمان نهٔ راوړی | اهغوئ ته اووایه چې تاسو پخپله طریقه عمل کوئ | مونږ به پخپله طریقه | | | |

| عٰمِلُوْنَ ۝ | وَانْتَظِرُوْا ج | اِنَّا | مُنْتَظِرُوْنَ ۝ |
|---|---|---|---|
| عمل کونکي یو | او انتظار کوئ تاسو | بیشکه مونږ (هم) | انتظار کونکي یو |
| عمل کوو ا ........................ | او د انجام انتظار کوئ | مونږ هم انتظار کوو. | |

**قوله تعالی:: اِنَّا عٰمِلُوْنَ**
**په خپل مقام باندې کلک اودریدل**:-د دې کافرانو د ویرولو او هوښیارولو د پاره دوی ته دهمکي ورکړه اوورته اووایه چه ښه ده تاسو دخپلې طریقې نه نه اخواکیږئ نومونږ هم په خپله طریقه باندې عمل کونکي یو.تاسو په انتظار اوسیږئ چه آخرې انجام به څه وی اومونږهم دداغه انجام لار ګورو.نو الحمد لله دنیا د دغه کافرانو انجام اولیدلو اود هغه مسلمانانو هم چه د الله ﷻ په فضل اوکرم سره په دنیاباندې خواره شو.په مخالفینوباندې ئې د کامیابئ سره غلبه حاصله کړه او دنیا ئې په موټی کښې واخسته (فلله الحمد).

| وَلِلّٰهِ | غَيْبُ | السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ | وَاِلَيْهِ | يُرْجَعُ | الْاَمْرُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوخاص الله لره دی | علم دغیبو | دآسمانونو | اودزمکې | اوخاص هغه ته | اواپس کړې کیږی | معاملې |
| آسمانونو او زمکي ټول پټ خیزونه الله ﷻ ته معلوم دی | اوټولې معاملې به هم هغه ته واپس کیږی | نو | | | | |

| كُلُّهٗ | فَاعْبُدْهُ | وَتَوَكَّلْ | عَلَيْهِ ط | وَمَا | رَبُّكَ | بِغَافِلٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ټولې | پس عبادت کوه د هغه | اوبهروسه کوه | په هغه باندې | اونهٔ دی | رب ستا | ناخبره |
| تهٔ صرف دهغه عبادت کوه | او هم په هغه باندې بهروسه کوه | اوستا پروردګار ستاسو د کارونو | | | | |

| عَمَّا | تَعْمَلُوْنَ ۝ |
|---|---|
| د هغه کارونو نه | چې تاسو ئې کوئ |
| نه غافل نهٔ دی | |

**قوله تعالی:: وَلِلّٰهِ غَيْبُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ**
**د غیبو پیژندونکې**:- د آسمانونو اوزمکو په ټولو غیبوباندې خبر لرونکې صرف یو الله دې. هم د هغه عبادت کول ټولو له پکار دی اوهم په هغه باندې بهروسه کول بکاردی اوځوک چه هم په هغه باندې

بهروسه اوکړی هغه دده دپاره کافي دي. حضرت کعب رحمه الله فرمائي چه دتورات خاتمه هم په دې ایاتونو باندې ده. الله ﷻ په مخلوق کښې د چا د یو عمل نه هم بې خبر نه دې.

**(تفسير سورة يوسف)**

ددې سورت په فضيلت کښې يوحديث واردشوې دې.خپلو ماتحتانو ته سورة يوسف اوښايه کوم مسلمان چه اولولي يا دا خپل کور والا ته اوښائي ياني خپل ماتحت خلقو ته اوښائي په هغه باندې الله ﷻ دمرګ سکرات آسانوي او هغه ته دومره قوت ورکوي چه هغه به يومسلمان سره حسدنه کوي.(١) خوددې سندډير ضعيف دې.ددې يو متابع په ابن عساکرکښې دې خودهغې هم ټول سندونه منکر دی. د امام بيهقي رحمه الله کتاب "دلائل النبوة" کښې دی چه کله ديهوديانو يوې ډلې داسورة واوريدونو هغوی مسلمانان شو ځکه چه هغوی سره هم دا واقعه دغه شان بيان وه.(٢)دا روايت د کلبی د ابوصالح نه او د هغوی د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه نه دې.

| اياتونه | | سورةيوسف مكية وهي مائة واحدى عشرة اية واثنا عشر ركوعا | | ركوع ګاني |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| (١١١) | | شروع کوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم کونکې دې | | (١٢) |
| د الله په نوم شروع کوم چه ډير مهربان اوزيات رحم کونکې دې | | | | |

| الٓرٰ | تِلْكَ | اٰيٰتُ | الْكِتٰبِ | الْمُبِيْنِ۝ | اِنَّآ | اَنْزَلْنٰهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ا ل ر | دا | آيتونه | د كتاب | روښانه دی | بيشكه مونږه | نازل كړې دې دا |

الف لام را | دا د روښانه كتاب ايتونه دی| .................. | ..................مونږ دا قران

| قُرْءٰنًا | عَرَبِيًّا | لَّعَلَّكُمْ | تَعْقِلُوْنَ۝ | نَحْنُ | نَقُصُّ |
|---|---|---|---|---|---|
| قرآن | په عربئ كښې | د پاره ددې چې تاسو | پوهه شئ | مونږه | بيانوو |

په عربئ ژبه كښې نازل كړې دې | چې تاسو پرې ښه پوهه شئ | ..................مونږ چې

| عَلَيْكَ | اَحْسَنَ الْقَصَصِ | بِمَآ | اَوْحَيْنَآ | اِلَيْكَ | هٰذَا الْقُرْاٰنَ ۖ | وَاِنْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په تا | ډيره ښهٔ قيصه دقصونه | په وجه د دې | چې وحی وكړه مونږ | استا طرف ته | ددې قرآن | او اګرچه |

دا قران تاته د وحی په صورت كښې راليږلې دې .نوهم ددې په ذريعه درته يوهٔ ښكلې قصه اوروو| يقينا

| كُنْتَ | مِنْ قَبْلِهٖ | لَمِنَ الْغٰفِلِيْنَ۝ | اِذْ قَالَ | يُوْسُفُ | لِاَبِيْهِ | يٰٓاَبَتِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وې ته | وړاندې ددې نه | خامخا د ناخبرو نه | كله چې اووئيل | يوسف | پلار خپل ته | اې پلاره زما |

ددې نه وړاندې ته بيخې ناخبره وې | ............ كله چې حضرت يوسف عليه السلام خپل پلار ته اووئيل

**قوله تعالى:: نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ اَحْسَنَ الْقَصَصِ**

**په قرآن پاک کښې بهترينه قصه:**-د سورة بقرې په شروع کښې د حروف مقطعه بحث تيرشوې دې. د

---

١) الثعلبي في سوره.

٢) دلائل النبوه:٦/٢٧٦.

دي کتاب يعني قرآن شريف دا اياتونه ډير واضح کولاؤ او ښه صفادي.دمبهم څيزونو حقيقت پرانستي شي.دلته د ﴿تلك﴾ معنى ده ﴿هذه﴾. خکه چه عربي ژبه ډيره کامله اومقصدپوره واضح کونکي اود وسعت اوکثرت والا ده.په دي وجه دا د ټولونه پاك كتاب په دي بهترين ژبه کښې د ټولونه په افضل رسولﷺ دفرښتو دسرداري فرښتې په سفارت کښې دزمکې په مخ دټولونه په بهتر ځائ په وختونو کښې په بهترين وخت کښې نازل شو او هرقسم کمال ته اورسيدو دې د پاره چه تاسو په هرقسم سوچ او پوهه حاصله کړئ او په دي باندي پوهه شئ مونږ يو بهترين قصه بيانوو. صحابه کرامو ؓ عرض اوکړو چه حضورﷺ که يوه قصه مو بيان کړي وه. په دي باندي دا آيت نازل شو. (۱) او په يو روايت کښې دی چه د يوې زمانې پورې قرآن کريم نازليدلو. او حضورﷺ به د صحابه کرامو ؓ په وړاندي تلاوت فرمائيلو بيا هغوی اووئيل چه حضورﷺ که چرته څه واقعه بيان شوي وه نو په دي باندي دا آياتونه نازل شو. بيائي د څه وخت نه پس اووئيل افسوس چه حضورﷺ څه خبره فرمائيلي وه په دي باندي دا آيت ﴿اللَّهُ نَزَّلَ أَحْسَنَ الْحَدِيثِ﴾ نازل شو.اوخبره بيان شوه(۲)د خبرو يوشان طريقه کتلوسره صحابه کرامو رضوان الله اجمعين عرض اوکړو يارسول الله ﷺ د خبري نه پورته اود قرآن نه لاندي که څه خبره وه يعني واقعه.نو په دي باندي دا آيت نازل شو بيا هغوی د حديث خواهش ښکاره کړو په دې باندي آيت ﴿اللَّهُ نَزَّلَ﴾ نازل کړو. نود قصې په اراده بهترين قصه اود خبري په اراده بهترين خبره نازل شوه.

**د قرآن پاك په امتياز باندي احاديث:** پدې ځائ کښې چرته چه د قرآن کريم تعريف کيږي اودا بيان دي چه داقرآن پاك د ټولوکتابونه بې نيازه کونکي دي. مناسب دی چه مونږ د مسند احمد دا حديث هم بيان کړو په کوم کښې چه دی حضرت عمر بن الخطابؓ ته د اهل کتاب نه يو کتاب په لاس ورغلې ور هغه ددې کتاب سره دحضورﷺ په خدمت کښې حاضرشواودحضورﷺپه وړاندې دالوستلو. حضور ﷺ سخت غصه شواو وئې فرمائيل اې دخطاب خوېه آياته په دې مشغوليدو سره دهوکه کيدل غواړې؟ د هغه قسم د چا په لاس کښې چه زما ځان دې دا ما ډير روښانه او پړقيدونکې راوړې دې ته د دې کتاب نه د څه خبري تپوس مه کوه ممکن ده چه هغه صحيح جواب درکړي او ته هغه دروغ اوګڼې او کيدې شي چه هغه غلط جواب درکړي او ته هغه رښتيا اوګڼې. واوره د هغه الله ﷻ قسم د چا په لاس کښې چه زما ځان دې که چرې نن پخپله هم حضرت موسیؑ ژوندې وې نوهغه ته به هم بغير زما د تابعدارئ نه بله لار نه وه.(۳) په روايت کښې دی چه حضرت عمر بن الخطابؓ حضور ﷺ ته عرض اوکړو د بنو قريظه قبيلې زما يو دوست د تورات نه يو څو جامع خبري ماته ليکلې دی نو آيا زه هغه تاسو ته واوروم؟ دحضورﷺ مخ مبارك بدل شو. حضرت عبدالله بن ثابت ؓ اووئيل اې عمرؓ! آيا ته د حضورﷺ مخ مبارك ته نه ګورې؟ اوس چه د حضرت عمرؓ نظر پرې پريوتلو نو وئې وئيل مونږ د الله ﷻ په رب کيدو باندې اسلام په دين کيدو باندې اوحضرت محمدﷺ د الله ﷻ په رسول کيدو باندې په زړه سره رضامند يو. نو هله د حضورﷺ د مخ مبارك نه غصه لاړه او وئې فرمائيل د هغه پاك ذات قسم د چا په قبضه قدرت کښې چه د محمدﷺ ځان دی که په تاسوکښې پخپله حضرت موسیؑ وې نو بيا به هم تاسو زه پريخودلم اود هغه په تابعدارئ کښې به اخته کيدئ نو تاسو ټول به ګمراه کيدئ. په امتونوکښې زما حصه تاسو يئ او په نبيانوکښې ستاسو حصه زه يم(۴)په ابويعلی کښې دی چه د سوس اوسيدونکې يوه قبيله عبدالقيس يو سړې فاروق اعظم ؓ له راغلو. هغوی د ده نه تپوس اوکړو

(۱) الطبري: ۱۵/۵۵۲.
(۲) حاکم: ۲/۳۴۵وهوحسن.
(۳) احمد: ۳/۳۸۷.
(۴) احمد: ۴/۲۶۵-۲۶۶.

چه ستا نوم فلانکې فلانکې دی؟ هغه ونیل او، تپوس ئې اوکړو ته په سوس کښې مقیم ئې؟ هغه ونیل او. دهغه په لاس کښې چه کومه کوره وه هغه ئې پرې اووهلو. دې سړی ونیل امیر المؤمنین زما قصور څه دی؟ حضرت عمر اوفرمائیل چه کینه زه درته بنایم. بیا ئې بسم الله الرحمن الرحیم° اولوستلو او ددې سورة آیات ﴿لَمِنَ الْغٰفِلِیْنَ۝﴾ پورې تلاوت کړو. درې ځل ئې ددې آیاتونو تلاوت اوکړو او درې ځل ئې هغه اووهلو. هغه تپوس اوکړو امیر المؤمنین زما څه قصور دی؟ هغه اوونیل تا د دانیال کتاب لیکلی دی هغه ونیل چه ته څه وائې نو زه د هغې کولو ته تیاریم هغه ورته اوونیل ښه لاړشه په ګرمو اوبو او سپینو مالوچوسره هغه بالکل وران کړه. خبرداردنن نه پس نه هغه پخپله اولولې اونه ئې بل چاته لوله اوس مې که واوریده چه تاپخپله هغه لوستلې یا دې چاته خودلې دې نوداسې سخته سزا به درکوم چه عبرت به وی.

بیا ئې اوفرمائیل کینه یوه خبره واوره زه لاړم د اهل کتابویوکتاب مې اولیکلو بیا مې هغه په څرمن کښې واخستو اود حضور په خدمت کښې حاضرشوم. حضور زما نه تپوس اوکړوستا په لاس کښې دا څه دی؟ ماونیل چه یو کتاب دې چه مونږ په علم کښې زیات شو پدې باندې حضور دومره خفه شو چه د غصې په وجه د حضور په اننګوباندې سرخی ښکاره شوه بیا آواز اوکړې شو مونږ جمع کونکې دې. هغه وخت انصارو وسلې سنبالې کړې چه چا حضور خفه کړې دې اود منبر نبوی نه چاپیره هغه خلقو وسلې تیارې نیولې دی. ونې فرمائیل اې خلقوا زه جامع کلمات ورکړې شوې یم اود کلماتو خاتم ورکړې شوې یم. اوبیا زمادپاره ډیر اختصارکړې دې.ما دالله ددین خبرې ډیرې پرقیدلې اوصفا راوړلې دی خبردار تاسو دهوکه کیږئی مه ژور کوزیدونکی چرته تاسو دهوکه نه کړی. دې اوریدو سره حضرت عمر اودریدو اوونې فرمائیل د الله په رب کیدو، د اسلام په دین کیدو اوپه رسول الله رسول کیدو باندې یارسول الله د زړه نه راضی یو. نوحضور د منبرنه راکوزشو.

(۱) ددې یو رواوی عبدالرحمن بن اسحاق ته محدثین ضعیف وائی امام بخاری دهغه حدیث صحیح نه لیکی. زه وایم د دې یو شاهد اوسندحافظ ابوبکر احمدبن ابراهیم اسماعیلی راوړلې دې چه د خلافت فاروقی په زمانه کښې هغوی د حمس یو څوکسان سړی راوړغوښتل په دوی کښې دوه کسان هغه وو چا چه د یهودیانونه یو څو خبرې خوښې کړې لیکلې وې هغوی دا مجموعه هم ځان سره راوړله چه دحضرت عمر نه معلومه کړی که چرې هغوی اجازت راکړو نو مونږ به د دې په شان نورې خبرې هم زیاتې کړو ګنی دا به هم اوغورزوو. دلته چه راغله هغوی اوونیل امیرالمؤمنین! د یهودیانونه مونږ بعضې خبرې اورو په څه سره چه زمونږ ویښته اودریږی نو آیا دهغوی نه هغه خبرې مونږ واخلوکه نه؟ هغوی اوفرمائیل چه کیدې شی تاسو د هغوی څه خبرې لیکلی دی؟واورئی زه په دې کښې فیصله شوې واقعه اوروم. زه دحضور په زمانه کښې خیبر ته لاړم هلته د یویهودی خبرې زما ډیرې خوښې شوې ما هغه ته درخواست اوکړو هغوی هغه ماته اولیکلې. زه واپس راغلم اوحضور ته مې د هغې ذکر اوکړو. هغوی اوفرمائیل لاړشه هغه راوړه. زه په خوشحالۍ خوشحالنی لاړم چه حضور ته دا زما کار خوښ شو. راومې اوهغه مې لوستل شروع کړو. لږ شان پس ما نظراوچت کړو چه اومې کتل نو حضور سخت ناراض وو.زما د خلې نه یوحرف هم اونه وتلواو دد ډیرې ویرې زما ویښته اودریدل، زما دې حالت ته په کتلو حضور هغه لیك راوچت کړو اود هغې یو یو حرف ئې ورانول شروع کړو. او په ژبه مبارکه به ئې ارشاد فرمائیلو ګورئی خبردار د هغوی اونه منئی دوی خود ګمراهئی په کنده کښې پریوتلی دی اودوی خو نور هم دهوکه کوی. حضور د دې لیك یویو لفظ باقی پرینخودو. دې اورولو سره حضرت عمر اوفرمائیل که تا هم د هغوی خبرې لیکلې وی نوما به ته په داسې سزا کولې

(۱) مجمع الزوائد: ۱۷۳/۱،الاحادیث المختارة: ۲٤/۱

چه د نورو دپاره به عبرت شي. هغوی اوونیل والله هیڅ کله به هم یو حرف اونه لیکو.بهر راتلوسره هغوی خنګل ته لاړل هغوی هغه خپلې تختې ته کنده اوکړه خښې کړې[1] په مراسل ابی داود کښې هم د حضرت عمر ﷺ هم داسې روایت دې. والله اعلم.

| إِذْ قَالَ | يُوسُفُ | لِأَبِيهِ | يَا أَ | بَتِ إِنِّي | رَأَيْتُ أَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا |
|---|---|---|---|---|---|
| کله چې اوونیل | یوسف | پلار خپل ته | ائې پلاره زما | بیشکه زهٔ چې یم | اولیدل ما یوولس ستوری |
| کله چې حضرت یوسف ﷺ خپل پلار ته اوونیل ائې زما بابا جانه! ما یوولس ستوري، نمر او سپوږمۍ ( | | | | | |

| وَالشَّمْسَ | وَالْقَمَرَ | رَأَيْتُهُمْ لِي | سَاجِدِينَ |
|---|---|---|---|
| او نمر | او سپوږمۍ | اولیدل ما هغوئ چې ماته | سجده کونکی دی |
| په خوب کښې) اولیدل اخه ګورم چې دا ټول زما په مخکښې ټيټ شوی دی | | | |

قوله تعالى:: إِنِّي رَأَيْتُ أَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ

**د یوسف ﷺ خوب:** دحضرت یوسف ﷺ پلار حضرت یعقوب بن اسحاق بن ابراهیم علیهم السلام دې، په حدیث کښې دی چه کریم بن کریم بن کریم یوسف بن یعقوب بن اسحاق بن ابراهیم علیهم السلام دې. ([2])

**لوئې بزرګ څوک دې** ::د حضور ﷺ نه تپوس اوکړې شو چه د ټولونه زيات بزرګ څوک دې؟ حضور ﷺ اوفرمائیل چه د چا په زړه کښې د ټولو نه ډیره د الله ﷻ ویره وی. هغوی ونیل زمونږ داسې عام جواب مقصدو نه وو.حضور ﷺ اوفرمائیل بیا د ټول نه ډیر بزرګ حضرت یوسف ﷺ دې. چه پخپله نبی وو د چا پلار چه نبی وو. د چا نیکه چه نبی وو اوخلیل الله وو. هغوی ونیل چه مونږ دا هم تپوس نه کوو. بیا حضور ﷺ اوفرمائیل آیا بیا تاسو د ټولو عربو د قبیلې په نسبت داسوال کوئې؟ اوهغوی ونیل اوجی. واوره چه د جاهلیت په زمانه کښې کوم چه ممتاز او شریف وو هغوی د اسلام راوړو نه پس هم داسې شریف دی اوهغوی خپل دینې پوهه حاصله کړی وی([3]) حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی د نبیانو خوب لیدل د الله ﷻ وحی وی([4])مفسرینو دلته دیولسو ستورونه مراددحضرت یوسف ﷺ یولس رونړه اخستې دی اودنمر سپوږمنی نه مراددهغوی پلار اومور دی.ددې خوب تعبیر دخوب لیدلونه څلوېښت کاله پس ښکاره شو. بعضې وائی چه د دې کال نه پس ښکاره شو کله چه هغه خپل موريلار په شاهی تخت باندې کينولو اويولس رونړه د هغوی مخې ته سجده کښې پراته دی. هغه وخت حضرت یوسف ﷺ اوفرمائیل چه زما مهربان پلاره دا اوګوره نن الله ﷻ زما خوب رښتونی کړو. ([5])

**د یولس ستورو نومونه:**: په یو روایت کښې دی چه بستانه نومی د یهوديانو یو زبردست عالم وو. هغه دحضور ﷺ نه ددې یولسوستورو نومونو معلومول طلب کړه. حضور ﷺ خاموش شو نو جبرائیل د آسمان نه راغلو حضور ﷺ ته نې نومونه اوخودل حضور ﷺ هغه راوغوښتلو او ونې فرمائیل که زه تاته د دوی نومونه اوښایم نوته به مسلمان شې. هغه اقرار اوکړو حضور ﷺ اوفرمائیل واوره نومونه دا دی.

---

[1] وسنده حسن غريب.
[2] صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة یوسف باب قوله (ويتم نعمته عليك وعلى آل يعقوب):۴٦٨٨، احمد:۹٦/۲
[3] صحیح بخاری کتاب التفسیر سوره یوسف باب قوله (لقدكان فى يوسف واخوته ايات للسائلين):۴٦٨٩، صحیح مسلم:۲۳۸۷، احمد:۲۵۷/۲، مسندالطيالسي:۷۱، مسندالحميدی:۱۰۴۵، ابن حبان:٦٣٦. (بخاری)
[4] الطبری:۵۵۴/۱۵.
[5] ايضاً:۵۵۷/۱۵. ۱۲/يوسف:۱۰۰

(۱) جريان (۲) طارق (۳) زيال (۴) ذوالكنفات (۵) قابس (۶) وثاب (۷) عمودان (۸) فيلق (۹) مصبح (۱۰) ضروح او (۱۱) ذوالفزع. يهودي اوونيل چه او د الله ﷻ قسم د دې ستورو نومونه هم دا دي.
(۱) دا روايت په دلائل بيهقي كښې اوابويعلى كښې اوبزاز كښې اوابن ابى حاتم كښې هم راوړې دي.
په ابو يعلى كښې دادي چه كله يوسف ﷺ خپل پلارته دخوب بيان اوكړو نو هغوى اوفرمائيل چه دا ربنتونې خوب دې دا به پوره كيږي. حضورﷺ فرمائي دنمر نه مراد پلار او د سپوږمۍ نه ستاسو مور مراد ده. خوددې روايت په سندكښې حكم بن ظهيرى فزارى منفردې دې.كوم ته چه بعضو امامانوضعيف ونيلى دى. او اكثرو دې متروك كړې دې.هم دغه حديث دحسن يوسف راوى دې ده ته خلورواړه ضعيف واني.

قَالَ يٰبُنَيَّ لَاتَقْصُصْ رُءْيَاكَ عَلٰٓى اِخْوَتِكَ

| دهٔ اوونيل | ائې خويه | مهٔ بيانوه | خوب خپل | رونړو خپلوته

| هغه ورته اوونيل چې ائې زما بچيه | دا خوب خپلو رونړو ته مهٔ بيانوه

فَيَكِيْدُوْا لَكَ كَيْدًا ؕ اِنَّ الشَّيْطٰنَ لِلْاِنْسَانِ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ۝

پس تدبيربه جوړكړي| تا ته| په تدبيرجوړولوسره| بيشكه شيطان| دپاره دانسان| دشمن |ښكاره دې

ګنى د ضرر دپاره به درته څه چل جوړ كړي | ځكه چې شيطان د انسان ښكاره دښمن دې

**قوله تعالىٰ:: قَالَ يٰبُنَيَّ لَا تَقْصُصْ رُءْيَاكَ عَلٰٓى اِخْوَتِكَ فَيَكِيْدُوْا لَكَ كَيْدًا ؕ**

**د يعقوبؑ يوسفؑ ته دخپل خوب نه بيانولو تاكيد:-** د حضرت يوسف ﷺ دې خوب اوريدو سره د هغې تعبير په وړاندې كيخودو او حضرت يعقوبؑ ده ته تاكيد اوكړو چه دا د رونړو په وړاندې مه بيانوه. ځكه چه د دې خوب تعبير دا دې چه نور رونړه به ستا په وړاندې ټيټ وى تردې چه هغوى به ستا د عزت او تعظيم د پاره ستا په وړاندې به خپله ډير كمزورى او عاجز ښكاره كړي نو ډير ممكن دى چه د دې خوب په اوريدو باندې د دې تعبير د دې وړاند كيخودو سره د شيطان په دهوكه كښې به راشي نو د اوس نه به ستا په دښمنئ كښې اخته شي اود حسد په وجه به د يو نامعقوله په شان دهوكه اوكړي او په يوه حيله باندې به ستا د ټيټ والى فكر كښې اخته شي. نود رسول اللهﷺ تعليم هم دغه دې فرمائي چه تاسو خلق څه ښه خوب اووينئ نو بيا خو هغه خير كه بيانوئ او چه كوم سړې داسې خراب خوب اووينى نوچه په كوم اړخ باندې ئې نواړخ بدل كړه او ګس طرف ته درې ځل توكانړي توكړنې.اودهغه دبدئ نه په الله ﷻ سره پناه غواړه. او چاته د دې ذكر مه كوه. نو هغه خوب به تاته څه نقصان نه رسوى([2])دمسنداحمدوغيره په حديث كښې دى رسول الله فرمائي د خوب تعبيرې چه تركومې پورې نه وى اخستې نو هغه لكه چه د مرغئ په پښو كښې دى. او چه كله د هغې تعبير بيان شو نو بيا هغه كيږي.([3])

**فائد:-**ددې نه دا حكم هم اخستې شي چه نعمت پټول پكار دى. تركومې پورې چه هغه په خپله په ښه شان سره واضح شوې نه وى اوښكاره نه شي. خو په يوحديث كښې دى چه په ضرورتونو پوره كوولو باندې د هغوى د پټيدونه هم امداد اخلئ ځكه چه هريو هغه سړې چاته چه څه نعمت وركولى شي خلق

[1]) مسندالبزار:۲۲۲۰، دلائل النبوة:۲۷۷/۶. (ابن جرير)
[2]) صحيح بخارى كتاب التعبير باب مذا راى مايكره فلا يخبر بها ولايذكرها:۷۰۴۴، صحيح مسلم:۲۲۶۱.
[3])ابوداؤد كتاب الادب فى الرويا:۵۰۲۰وسنده حسن، ترمذى:۲۲۷۹،ابن ماجه:۳۹۱۴، احمد:[illegible]/۱۰، مسندالطيالسى:۱۰۸۸، حاكم:۳۹۰/۴،مشكل الآثار:۲۹۵/۱.

هغه سره حسد کوی.(۱)

وَكَذٰلِكَ يَجْتَبِيْكَ رَبُّكَ وَيُعَلِّمُكَ مِنْ تَأْوِيْلِ الْاَحَادِيْثِ وَيُتِمُّ

اوهمدارنګي|غوره به کړی تالره|رب ستا|او اوبه ښائی تا ته|تعبیر بیانول د(خوب د)خبرو نه|او پوره به کړی

(لکه چي دي خوب اولیدو) هم دغه شان به ستاپروردګار تا غوره کړی | اوتا ته به د خوبونو تعبیر

نِعْمَتَهٗ عَلَيْكَ وَعَلٰٓى اٰلِ يَعْقُوْبَ كَمَآ اَتَمَّهَا

نعمت خپل | په تا باندي| او په اولاد دیعقوب باندي | لکه څنګه چي | هغه پوره کړي دي دا نعمت

اوښائی |اوخپل انعام به په تا او د یعقوب ؑ په نور اولاد باندي پوره کړی |لکه چي څنګه ئي ددي نه

عَلٰٓى اَبَوَيْكَ مِنْ قَبْلُ اِبْرٰهِيْمَ وَاِسْحٰقَ ؕ اِنَّ رَبَّكَ

په دوارو بزرګانو ستا باندي|مخکښي ددي نه | چي ابراهیم او اسحاق دی| بیشکه | رب ستا

مخکښي ستا په نیکه او په قرنیکه حضرت ابراهیم ؑ او حضرت اسحاق ؑ باندي پوره کړي دي

عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ۝

ښه پوهه دي |د حکمت خاوند دي|

بیشکه ستا پروردګار په هر څه پوهه دي دحکمت خاوند دي |

قوله تعالی:: وَكَذٰلِكَ يَجْتَبِيْكَ رَبُّكَ وَيُعَلِّمُكَ مِنْ تَاْوِيْلِ الْاَحَادِيْثِ

**دحضرت یوسف ؑ فضیلت**:-حضرت یعقوب ؑ د خپل زړه ټوټه حضرت یوسف ؑ ته چه دکومو ملاویدونکومرتبو خبر ورکوی چه څنګه په خوب کښي الله ﷻ تاته دا فضیلت اوخودلو دغه شان به الله ﷻ تاته دنبوت اوچته مرتبه هم درکړی.اوتاته به د خوبونوتعبیرښانی اوتاته به خپل پوره نعمت درکوی. یعنی نبوت غوندي نعمت لکه چه څنګه دي نه وړاندي ابراهیم خلیل الله ؑ اوحضرت اسحاق ؑ ته هم ورکړي شوي دي. چه ستا نیکه او غرنیکه وو. الله ﷻ دي نه ښه خبر دي چه د نبوت لائق څوك دي.

لَقَدْ كَانَ فِيْ يُوْسُفَ وَاِخْوَتِهٖٓ

| بیشکه | دی | په قیصه دیوسف | او رونړو د هغه کښي

|حقیقت دادي چي د حضرت یوسف ؑ

اٰيٰتٌ لِّلسَّآئِلِيْنَ ۝ اِذْ قَالُوْا لَيُوْسُفُ وَاَخُوْهُ

نښي| د پاره دتپوس کونکو | کله چي |اوونیل هغوی |چي خامخا یوسف | او رور د هغه

اودهغه د رونړو په قصه کښي تپوس کونکو دپاره (ډیري) غټي نښي دی | هرکله چي هغوئ

اَحَبُّ اِلٰٓى اَبِيْنَا مِنَّا وَنَحْنُ عُصْبَةٌ ؕ اِنَّ

زیات خوښ دی | پلار زمونږ ته | زمونږ نه | اوحال دادي چي مونږه | پوره ډله یو | بیشکه

(پخپل مینځ کښي) اوونیل اچي یوسف ؑ او دهغه سکه رور زمونږ د پلار زمونږ نه زیات خوښ دی

(۱) طبراني: ۱۶۶۰۹، مسندالشامیین:۴۰۸، شعب الایمان:۶۳۷۹، مسندالرویاني:۱۴۳۸، مسندالشهاب:۶۶۰.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اَبَانَا | لَفِيْ ضَلٰلٍ | مُّبِيْنِۣ۞ | اِقْتُلُوْا | يُوْسُفَ | اَوِاطْرَحُوْهُ | |
| پلار زمونږه | خامخا په دهوکه | ښکاره کښې دې | قتل کړئ | یوسف | یا اوغورزوئ هغه | |
| حال دا چې مونږ خوسمه پوره ډله یو ارښتیا خبره داده چې زمونږ پلار ښکاره خطا شوې دې (راشئ) یوسف ﷺ | | | | | | |
| اَرْضًا | يَّخْلُ | لَكُمْ | وَجْهُ | اَبِيْكُمْ | وَتَكُوْنُوْا | |
| په یوه بله زمکه کښې | چې خالی شی | تاسو ته | توجه | د پلار ستاسو | او شئ به تاسو | |
| اووژنئ ایا ئې چرته یو بل ملک ته اوغورزوئ نو د پلار مخه به درته یو ازې شی او دهغې نه پس به | | | | | | |
| مِنْۢ بَعْدِهٖ | قَوْمًا | صٰلِحِيْنَ۞ | قَالَ | قَآئِلٌ | مِّنْهُمْ | لَا تَقْتُلُوْا يُوْسُفَ |
| روستو ددې نه | خلق | نیکان | اووئیل | یو ویونکی | دهغوئ نه | مه قتلوئ یوسف |
| (په توبې ویستلو سره) نیکان شئ | په هغوئ کښې یو کس اووئیل | چې یوسف ﷺ مه وژنئ | | | | |
| وَاَلْقُوْهُ | فِيْ غَيٰبَتِ | الْجُبِّ | يَلْتَقِطْهُ | بَعْضُ السَّيَّارَةِ | اِنْ | كُنْتُمْ |
| اواوغورزوئ دې | په تیارو کښې د کوهی | را اوچت به کړی دې | یو لاروې | مسافر | که چرې | یئ تاسو |
| خو په تیارو د کوهی کښې ئې واچوئ اچې څوک مسافر ئې راوباسی (او خان سره ئې بوځی) اکه تاسو (خواه | | | | | | |
| فٰعِلِيْنَ۞ | | | | | | |
| کونکی | | | | | | |
| مخواه) څه کول غواړئ | | | | | | |

قوله تعالى: اِذْ قَالُوْا لَيُوْسُفُ وَاَخُوْهُ

**د حضرت یوسف ﷺ سره د رونړوحسد:** -په حقیت کښې د حضرت یوسف ﷺ او د هغه د رونړو واقعات ددې قابل دی چه د هغې لتهونکې دهغې نه ډیر زیات عبرت حاصلولې شی اونصیحتونه اخستلې شی. د حضرت یوسف ﷺ د خپلې مورنه بل رور بنیامین وو او باقی دا نور رونړه د بلې مورنه وو. دوی خپل مینځ کښې وئیل چه د الله ﷻ قسم پلار زمونږ نه دا دواړه ډیر خوښوی. حیرانتیا ده چه یوه ډله باندې دوی ته ترجیح ورکوی چه صرف دوه دی. یقیناً دا خود پلار ښکاره غلطی ده.

**دیوسف ﷺ د رونړو په نبوت څه دلیل نشته** ::دایادساتئی چه دحضرت یوسف ﷺ په رونړوباندې د نبوت څه خاص دلیل نشته اود دې آیت طرز بیان خو بالکل ددې خلاف دې. دبعضو خلقو بیان دې چه د دې واقعه نه پس هغوی ته نبوت ملاؤشو خودا خیز هم د دلیل محتاج دې. او په دلیل کښې د قرآن پاك آیت ﴿ قولوا امنا﴾ کښې لفظ اسباط پیش کول هم د احتمال نه زیات وقعت نه لری څکه چه بطون بنی اسرائیل ته اسباط وائی لکه چه عربوته قبائل وئیلې شی اوعجم ته شعوب وئیلې شی نو په آیت کښې صرف دومره دی چه د بنی اسرائیل په اسباط باندې د الله ﷻ وحی نازل شوه دوی څکه اجمالاً ذکر کړی دی چه دوی ډیر وو. خو هر سبط د یوسف ﷺ په رونړوکښې یونسل وونود هغې څه دلیل نشته چې خاص دې رونړوته الله ﷻ خلعت نبوت سره عزت ورکړې وو. والله اعلم.

**دیوسف ﷺ خلاف د رونړو تدبیر** ::بیا ئی خپل مینځ کښې اووئیل چه بس یوکار اوکړئی چه نه بانړس وی اونه د بانړس شپیلئی، دیوسف ﷺ دا کار ختم کړنی چه نه دې وی اونه زمونږ د لارې ازغې او بس هم مونږ په نظر راځو. اود پلار مینه هم مونږ سره پاتې شی. اوس هغه د پلار نه د اخواکولو دوه لارې دی

چه با خو هغه چرته مړ کړني او یاني چرته داسې لرې ځای کښې اوغورزوني چه د یو بل ته خبر هم نه وی اود داسې کولونه پس بیانیك جوړښتی توبه اوکړنی الله ﷻ معاف کونکې دې.

د مشر رور مشوره:: دې اوریدوسره یو مشوره ورکړه اوهم دغه د ټولونه لوئ وواود هغه نوم روبیل وو او څوك وائی یهودا وو او څوك وائی شمعون وو.[1] هغه وئیل روره دا خو بې انصافي ده. بې وجې بې قصوره او صرف په عداوت باندې راتلو سره یوه ناحقه وینه په خپل سر اخلنی دا خو ټیك نه ده. په دې کښې هم د الله ﷻ څه حکمت وو رب ته منظور نه وه چه په هغوی کښې دې د یوسف ؑ د قتل طاقت وی الله ﷻ ته خودامنظور وه چه یوسف ؑ به پیغمبر جوړوی بادشاه به ئې جوړوی اوهغوی به په عاجزئې سره دهغه مخې ته اودروی نود هغوی زړونه د روبیل په خبرې سره نرم شو او خبره اوشوه چه دې چرته په شارغوندې کوهی کښې غورزوو. قتاده ؒ وائې چه د بیت المقدس کوهې وو د دوی دا خیال وو چه ممکن ده مسافر هلته تیریږی او هغوی دې په خپله قافله کښې بوځی بیا چرته دې او چرته مونږ؟ کله چه په کوره کارکیږی نو زهرو ته څه حاجت بغیرد قتل کولو نه مقصد حاصلیږی نو ولې په وینولاسونه رنګ کړو. د هغه د ګناه تصور خو اوکړئی دا د رشته دارئی ماتول،د پلار نافرمانی کول، په وړوکی باندې ظلم کول، بې ګناه ته نقصان رسول، مشران خفه کول اودحقدار حق خوړل، د حرمت او فضیلت خلاف کول، بزرګی پریخودل او خپل پلار ته غم رسول اودې دهغه دسینې یخوالې اود سترګو آرام دهمیشه د پاره د لرې کولو اود بوډا پلار اود الله ﷻ د نیازبین پیغمبر او په دې بوډاوالی کښې ورته د برداشت نه بهرخفګان ورکول او دا ناپوهه ماشوم د خپل مهربان پلاردمینې دډك نظر نه د همیشه دپاره غیبولوپسې لګیدلی یو.د الله ﷻ دوو نبیانوته تکلیف رسول غواړو، په محبوب او محب کښې جداوالې اچوو، په آرام سره اوسیدونکی په خفګان کښې اچول غواړو. د ګل نه نازك بې زبانه ماشوم د هغه د مهربان بوډا پلار د نرمې اوګرمې غیږ نه جدا کوو. الله ﷻ دې هغوی اوبښی شیطان ورته څنګه اولته سبق خودلې دې اوهغوی هم څنګه په بدئې باندې ملا اوتړله.

| لَا تَأۡمَنَّا | مَا لَكَ | يَٰٓأَبَانَا | قَالُواْ |
|---|---|---|---|
| چې ته باور نۀ کوې په مونږه | څه باعث دې په تا | ائې پلاره زمونږه | اووئیل هغوئ |
| اهغوئ (حضرت یعقوب ؑ ته) اووئیل چې ائې بابا ادا په تا څه چل دې چې د | | | |

| مَعَنَا | أَرۡسِلۡهُ | لَنَٰصِحُونَ | لَهُۥ | وَإِنَّا | عَلَىٰ يُوسُفَ |
|---|---|---|---|---|---|
| زمونږ سره | او لیږه دې | خامخا خیر خواهان یو | د هغه | او بیشکه مونږه | په باره دیوسف کښې |
| یوسف ؑ په حقله تۀ په مونږ اعتبار نۀ کوې اسره ددې چې مونږ خو د هغه خیرخواه یو اصبا له ئې مونږ | | | | | |

| لَحَٰفِظُونَ | لَهُۥ | وَإِنَّا | وَيَلۡعَبۡ | يَرۡتَعۡ | غَدٗا |
|---|---|---|---|---|---|
| خامخاحفاظت کونکی یو | د هغه | اوبیشکه مونږه | او اولوبیږی | چې دې وخوری | صباله |
| سره اولیږه اچې خوراک څښاک اوکړی اولوبې اوکړی اومونږ خو هسې هم د هغه محافظ یو | | | | | |

قوله تعالی:: قَالُواْ يَٰٓأَبَانَا

د یوسف ؑ ځان سره دبوتلود پاره د رونړوپلار سره ټینګتیا:-دمشر رور روبیل په پوهه کولو سره ټولو رونړو په دې رائې سره اتفاق اوکړو چه یوسف ؑ بوځنی او په شار کوهی کښې واچونی. ددې خبرې دکولونه پس پلار دهوکه کول او رور غولول اوځان سره بوتلل اوبه هغه باندې مصیبت اچولو د

---

[1] الطبری: ۵۶٤/۱۵.

پاره تول يوخایٔ شوپلار له راغله سره د دي چه وو بداندیش بدخويه او بد غوښتونکی خو پلار په خپلو خبرو كښي د راګیرولو دپاره اوپه خپل ژور مكر كښي د هغه د انخلولو د پاره د اول نه جال خوروی چه بابا جان آخر څه خبره ده چه تاسومونږ ديوسف ﷺ باره كښي امين نه ګڼرئ؟ مونږ خود ده رونړه یو اوزمونږ نه زيات د ده خيرخواه څوك كيدئ شی؟ ﴿يَرْتَعْ وَيَلْعَبْ﴾ دويم قراءت ﴿نرتع ونلعب﴾ هم دئ. پلار ته وائی چه دا يوسف رور مونږ سره صباله سيل د پاره اوليګه د ده زړه به خوشحاله شی ګینتبه نیمه به لوبې توقې اوكړو په آزادئی سره به اوګرځو تاسو بې فكره اوسئی مونږ به د ده پوره حفاظت كوو او هروخت به ئی خيال ساتو تاسو په مونږ باندې يقين اوكړئی مونږ د ده خيال ساتونكي يو.

قَالَ اِنِّيْ لَيَحْزُنُنِيْٓ اَنْ تَذْهَبُوْا بِهٖ وَاَخَافُ اَنْ يَّاْكُلَهُ

يعقوب اوونيل زهٔ چې يم|خامخا غمژنوی ما|چې بوځئ تاس |هغه | او ويريږم زهٔ | چې اوبه خوری هغه

هغه ورته اووئيل|چې زهٔ خو په دې خفه يم|چې تاسو دې زما نه بوځئ||او ماسره ويره ده|چې شرمخ به ئی درنه

الذِّئْبُ وَاَنْتُمْ عَنْهُ غٰفِلُوْنَ۝ قَالُوْا لَئِنْ اَكَلَهُ الذِّئْبُ

شرمخ | او تاسو به | دهغه نه | بې فكره يئ | اوونيل هغوئ | كه چرې | اوخوړو دې | شرمخ

اوخوری ||وتاسو به ترې خپله مشغوله يئ |هغوئ اووئيل چې كه دې رانه شرمخ اوخوری ||ومونږ

وَنَحْنُ عُصْبَةٌ اِنَّآ اِذًا لَّخٰسِرُوْنَ۝

اوحال دا چې مونږه|يوه ډله يو|بيشكه مونږ به|په دغه وخت كښي|خامخا تاوانيان يو |

دومره (د لسو كسانو) لويه ډله موجود يو | نو بيا خو مونږ ډير غورزيدلی سړی يو |

**قوله تعالى:: قَالَ اِنِّيْ لَيَحْزُنُنِيْٓ**

**د يعقوب ﷺ يوسف ﷺ خپلورونړوسره په تلوباندې انديښنه او دهغې وجه:-** دالله ﷻ نبی حضرت يعقوب ﷺ دخپلو خامنو په دې غوښتنه چه زمونږ روريوسف ﷺمونږ سره دسيل دپاره اوليګه، جواب وركوی چه تاسو ته معلومه ده چه زما ده سره ډيره مينه ده تاسو دې بوځئی خود ده دا دومره ساعت جدائی به هم په ډيره ګرانه تيريږی. د حضرت يعقوب ﷺ د دې دومره مينې وجه دا وه چه هغوی د حضرت يوسف ﷺ په مخ باندې د خير نښې ليدلې د نبوت نور ئی د تندی نه ښكاره وو داخلاقو پاكوالې ئی د يوې يوې خبرې نه ښكاره وو د شكل ښائست ئی داخلاقود ښه والی بيان وو. د الله ﷻ د طرف نه په دواړو باندې صلوة او سلام دې وی. بله وجه دا هم وه چه ممكن ده تاسو په خپل چيلو څرولو او نور كارونو كښې مشغول شئی او الله ﷻ دې نه كړی چرته شرمخ راشي اودده كار خلاص كړی او تاسو ته پته هم اونه لګی.ديعقوب ﷺ هم داخبره هغوی واخسته او په دماغو كښې كينوله چه هم دا صحيح عذر دې. يوسف ﷺ به اخواكړو او د پلار مخې ته به هم دغه قصه اوكړو. هم هغه وخت ئی خبره جوړه كړه او جواب ئی وركړو پلاره تاسو خو ډير فكر اوكړو مونږ يوه ډله يو اودا مضبوط او طاقتوربه موجود يو او زمونږ رور به شرمخ خوری؟ بالكل ناممكن.كه چرې داسې اوشی نو بيا خو به مونږ ټول بې كاره ناقصه عاجز او نقصانيان يو.

فَلَمَّا ذَهَبُوْا بِهٖ وَاَجْمَعُوْٓا اَنْ يَّجْعَلُوْهُ فِيْ غَيٰبَتِ الْجُبِّ ۚ وَاَوْحَيْنَآ

نوهركله چې بوتلوهغوئ |هغه لره| اواتفاق ئې اوكړو |چې اوغورزوی هغه|په تيارود كوهی كښې |او وحی اوكړه مونږه

نوهركله چې ئې هغه بوتلو ||و پوخ نيت ئې او كړو |چې هغه په تيارود كوهی كښې واچوی ||ومونږ يوسف ﷺ ته وحی

| اِلَيْهِ | لَتُنَبِّئَنَّهُمْ | بِاَمْرِهِمْ هٰذَا | وَهُمْ | لَا يَشْعُرُوْنَ۞ |
|---|---|---|---|---|
| هغه ته | چې خامخا ته به خبر ورکړې دوئ ته | د دوی د دې کار | او دوئ به | نه پوهیږي |
| اوکړه | چې (يوه ورځ به راشي) چې ته به دوئ ته دا خبره په ګوته کوې | | او دوئ به (هغه وخت هم) پرې نه | |

قوله تعالی:: وَاَجْمَعُوْٓا اَنْ يَّجْعَلُوْهُ

**د يوسف ؑ په کوهي کښې غورزول:-** په حيلو بهانو هغوی پلار راضي کړواو حضرت يوسف نې بوتلو. ځنګل ته په بوتلوباندې ټولو په دې خبره باندې اتفاق اوکړو چه يوسف ؑ چرته په شاړکوهي کښې غورزوو حالانکه پلار ته نې دا وئيلي وو چه د ده زړه به خوشحاله شي، مونږ به دې په عزت سره بوځو، د هرقسم نه به نې خوشحاله ساتو. د ده زړه به خوشحاله وی او دې به راضي وی. دلته په راتلوسره نې غداری شروع کړه. اومزه دا وه چه ټولو په يوځل زړه سخت کړو.پلار دهغوی په خبرو کښې راغلو اوخپله د زړه ټوټه نې هغوی ته حواله کړو. د تلو په وخت کښې سينې سره اولګولو او ښکل نې کړو او په دعا سره نې رخصت کړو. دپلار د سترګونه په اخوا کولو سره دې ټولو رونړو ورته تکليف ورکول شروع کړه. بدردبه نې ورته وئيل اوځکونداری به نې پرې لګولې وهل ټکول بدو ردو سره هلته کوهي له اورسيدل. لاسونه پښې په پړی باندې اوتړلې او په کوهي کښې نې غورزول غوښتل. هغه به د يو يولمن پورې انختلواويويو ته به نې د رحم درخواست کولو خوهريو به رټلو اوديکې به نې ورکولې او وهلو ټکولو سره به نې اخواکولو. نااميده شوټول يوځای يو او کلك نې په پړی اوتړلو اوپه کوهي کښې ورزوړندکړو هغه دکوهي غاړه په لاس اونيوله خو رونړوپه ګوتو باندې اووهلو اوهغه نې هم ترې خلاصه کړه. تر نيمئي پورې به هغه رسيدلې وو چه هغوی پړې پړې کړو هغه پريوتلو اودکوهي په بيخ کښې مينځ کښې يوکاڼړې وو په هغې اودريدو. (¹)

**په کوهي کښې د الله ﷻ دطرفه تسلي::** هم دهغه مصيبت او هغه تنګئي په وخت کښې الله ﷻ د هغه طرفته وحي اوفرمائيله ته خپل زړه مطمئن کړه اودصبر نه کارواخله نو انجام نه به ته خبرشې. په وحي کښې اوفرمائيلې شو چه خفه کيږه مه دا مه ګڼړه چه دامصيبت به نه ختميږی، واوره الله ﷻ به تاته د دې سختئي نه پس آساني درکوی، د دې تکليف نه پس به راحت ملاويږی. په دې رونړو به الله ﷻ تاله غلبه درکوی. دوی تالاندې کول غواړي خو الله ﷻ به تا اوچت کړی.دوی چه دا څه نن تاسره کوی وخت به راشي چه ته به دوی ته د دوی دا ناکردې په ګوته کړې اودوی به د پښيمانتيانه سرونه ټيټ کړې وی. خپله خطابه اوری او دوی ته به دا هم معلومه نه وی چه دا ته نې ورور د دوی.

د حضرت ابن عباس ؓ نه روايت دې چه کله د يوسف ؑ رونړه هغه ته اورسيدل نو هغه دوی اوپيژندل خو هغوی دې اونه پيژندلو. دې وخت کښې هغه يوه پيالئي راوغوښتله په لاس نې کيخودله په ګوته نې ټنګ ورکړو نو آواز لاوتلې هم نه وو چه هغه اووئيل دا پيالئي خو څه وائي اوهم ستاسو متعلق څه خبرورکوی دا وائي چه ستاسو يو ميرنئی‌رور يوسف وو تاسو هغه د پلار نه بوتلو اوهغه مو په کوهي کښې اوغورزولو.بيائي هغې ته ټنګ ورکړواولې شان ساعت نې غوړته نيزدې کړه ونې فرمائيل واخلئي دا وائي چه بيا تاسو ددروغو وينه د هغه په قميص باندې اولګوله پلار له مو يوړه اوهغه ته مو اووئيل ستا خوئ شرمخ اوخوړلو. اوس خو دوی حيران شو او په خپل مينځ کښې اووئيل چه دا ډير بد اوشوراز ښکاره شو دې پيالئي خو ټولې خبرې دې بادشاه ته رښتيا رښتيا اوکړې.بس هم دا وه چه هغه ته په کوهي کښې وحي اوشوه چه د دوی دا کړه به د هغوی په ناپوهئي کښې وائې.

---

¹) الطبری: ۵۷٤/۱۵.

وَجَاءُوْٓ اَبَاهُمْ عِشَآءً يَّبْكُوْنَ ۝ قَالُوْا يٰٓاَبَانَآ اِنَّا

اوراغلل هغوئ | پلار خپل ته | ماسخوتن | چې ژړل ئې | اووئيل هغوئ | اې پلاره زمونږه | بيشکه مونږه

||اوهغوئ خپل پلار ته ماسخوتن په ژړا راغلل وې وئيل چې باباه مونږه خپل مينځ کښې د منډې

ذَهَبْنَا نَسْتَبِقُ وَتَرَكْنَا يُوْسُفَ عِنْدَ مَتَاعِنَا فَاَكَلَهُ

لاړو | چې مقابله کوله مونږه په منډه کښې | او پريښودو مونږ | يوسف | دسامان خپل سره | نواوخوړو هغه لره

مقابله شروع کړې وه ||او يوسف ﷺ مو دخپل سامان سره پريخودې وو || نو شرمخ راغلو || و هغه ئې اوخوړلو

الذِّئْبُ ۚ وَمَآ اَنْتَ بِمُؤْمِنٍ لَّنَا وَلَوْ كُنَّا صٰدِقِيْنَ ۝ وَجَاءُوْ

شرمخ | اونۀ ئې ته | باور کونکې | په مونږ | اگر که يو مونږه | رښتوني | او راوړه هغوئ

اوستا زمونږ په خبره باور نۀ راځي ||اگر که مونږ رېښتوني يو ||اودهغه په قميص باندې ئې د دروغو

عَلٰى قَمِيْصِهٖ بِدَمٍ كَذِبٍ ۭ قَالَ بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ اَنْفُسُكُمْ اَمْرًا ۭ

د پاسه قميص دهغه | وينه | د دروغو | اوې فرمائيل | بلکه | اسان کړې دی | تاسوته | نفسونو ستاسو | يولوئ کار

وينه لگولې راوړه | (حضرت يعقوب ﷺ) ورته اووئيل چې نه بلکه داتاسو له خانه يوه خبره جوړه کړې ده

فَصَبْرٌ جَمِيْلٌ ۭ وَاللّٰهُ الْمُسْتَعَانُ عَلٰى مَا تَصِفُوْنَ ۝

نوصبر | ډير ښۀ دې || اود الله نه | مددغوښتلې شوې دې | په هغه خبرو باندې | چې تاسوئې بيانوئ |

نوصبر ډير ښۀ دې || وتاسو چې څه وائې نو الله دې په هغې کښې زما مدداوکړی |

**قوله تعالىٰ:: وَجَاءُوْٓ اَبَاهُمْ عِشَآءً يَّبْكُوْنَ ۝**

**د رونړو د پلارپه وړاندې مکر اوفريب:** په خاموشۍ کښې په وړوکی رور باندې د الله ﷻ په معصوم نبی باندې دپلار د سترګو په ستوری باندې ظلم اوستم کولوسره دشپې پلارله سورقميص اودخپلې همدردۍ ښکاره کولو د پاره په ژړا راغله. اود خپل غم سبب ئې د يوسف ﷺ په نه موجود کيدو باندې دابيان کړو چه مونږغشي ويشتل اومنډې وهل مو شروع کړه اوکشر رورمو سامان سره پريخودو اتفاقي خبره وه چه هغه وخت يوشرمخ راغلو اوزمونږ رور ئې اوشلولو او وئې خوړلو بيا پلار ته خپله خبره په صحيح توګه کولواوتيك باورکولو د پاره د اوبونه وړاندې بند تړی که مونږ ستا په خيال کښې رښتوی هم يو نو بيا هم دا واقعه داسې ده او چه تاسو مونږ رښتونی ګڼړلوکښې تامل کوی. اوبيا د اول نه تاسو خپله يو شك ښکاره کړې وواود ښکاره واقعې خلاف اتفاقی هم داسې اوشو نوښکاره خبره ده چه په داسې وخت کښې به تاسو مونږ رښتونی هم نه ګڼې منلې.نومونږ رښتوی يو خو تاسو هم په مونږ باندې د يوحده پورې په اعتبارنه کولو باندې په حقه ئې. خکه چه دا واقعه داسې عجيبه ده مونږ پخپله هم حيران يو چه دا څه اوشو؟ دا خو وه زبانی لوبه اويو کاردا هم ووچه هغوی دځان سره د چيلئ يوبچې حلال کړې وواودهغې په وينه ئې ديوسف ﷺ قميص داغدار کړې وو چه د ګواهئ د پاره به ئې دپلار په وړاندې پيش کوو چه دا اوګوره د يوسف ﷺ چه زمونږ رورووودهغه د وينو داغونه دی.

**د دروغو خبره سرته نه رسي::** خود الله ﷻ شان وو ددروغوبښې چرته وی؟ هرڅه خو ئی کړې وو ولې قميص شلول ترې پاتې شوې وو په دې وجه په پلار باندې ئې تولـه دهوکه ښکاره شوه.خود الله ﷻ نبی صبراوکړواوپه صفاالفاظوکښې خان سره اووئيل خو خامنوته ئې هم پته اولګيدله چه د پلار زمونږ خبره خوښه نه شوه. فرمائی چه ستاسو زړه خو يوه خبره جوړه کړه خير زه خو به ستاسو د دې کار په خبره

صبراوکړم ترهغه وخت پورې چه الله ﷻ په خپله مهربانئ اوکرم سره دا خفګان اخواکړي تاسو چه دا کومه يوه د دروغو خبره ماته کوئ اوبه يو نه کيدونکي څيز باندې ماله يقين راکوئ په دې باندې زه د الله ﷻ نه امداد غوارم،که د هغه امداد راسره شامل حال شو نو هرڅه به ښکاره شي.د ابن عباس رضي الله عنه قول دې چه په قميص ليدوباندې هغوی داهم فرمائيلي ووچه عجيبه ده چه شرمخ يوسف اوخوړلودهغه په قميص باندې ويني راغلې خويوځائ کښې هم لړ شان اونه شليدو.خير دې زه به صبراوکړم په کوم کښې چه څه شکايت نه وی اونه څه ويره وی.

**صبر ددوئ څيزونو نوم دې::** وائي چه د دريو څيزونونوم صبر دې خپل مصيبت چاته نه ذکر کول، د خپل زړه غم د چا په وړاندې نه ښکاره کول او دې سره خپل نفس پاك نه ګڼړل. امام بخاري رحمه الله په دې موقعه باندې د حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها د دې واقعه پوره حديث بيان کړو په کوم کښې چه په بي بي عائشه رضي الله عنها د تهمت لګولو ذکر دې. په دې کښې هغوی اوفرمائيل والله زما او ستا مثال د حضرت يوسف عليه السلام د پلار په شان دې چه هغه فرمائيلي وو چه اوس هم صبر بهتردې. اوستا په دې خبرو باندې هم د الله ﷻ نه امداد غوښتلې شوې دې.[1]

| |
|---|
| وَجَآءَتْ سَيَّارَةٌ فَأَرْسَلُوا وَارِدَهُمْ فَأَدْلٰى دَلْوَهٗ ط قَالَ |
| او راغله \| قافله \| نواوليږوهغوئ\| اوبه راوړونکي خپل\| نو ورزوړنده ئې کړه\|بوقه خپله\|اووئيل هغه |
| اويوه قافله راغله نوهغوئ خپل يو اوبه راوړونکي اوبو پسې اوليږلو\|نوهغه خپله بوقه ورښکته کړه |
| يٰبُشْرٰى هٰذَا غُلٰمٌ ط وَاَسَرُّوْهُ بِضَاعَةً ط وَاللهُ عَلِيْمٌ |
| \|انې زيرې دې\|دا\|(خې)يو هلك دې\| اوپټ کړوهغوئ دۀ لره\|دتجارت دمال په طور\| اوالله \| خبردار دې |
| نونعرې ئې کړې چې انې(ملګرو) زيرې مې درباندې \|داخو په کښې هلک راووتو\| اوهغوئ د تجارت په |
| بِمَا يَعْمَلُوْنَ ۝ وَشَرَوْهُ بِثَمَنٍ بَخْسٍ دَرَاهِمَ مَعْدُوْدَةٍ ج |
| په هغه څه \| چې کول هغوئ \|اوخرڅ کړوهغوئ هغه لره\|په قيمت\| لږ \| په دراهمو \|شميرلي شو |
| خيال پټ کړو \|اوالله دهغوئ په ټولو کارونو ښۀ واقف وو\| او هغوئ په ډير لږ قيمت د شمير په يوڅو |
| وَكَانُوْا فِيْهِ مِنَ الزّٰهِدِيْنَ ۝ ع |
| او وو هغوئ\|په قيمت دهغه کښې\| بې رغبته |
| روپو خرڅ کړو \|اوهغوئ د دۀ په حق کښې هسې هم بې رغبته وو |

**قوله تعالى:: قَالَ يٰبُشْرٰى هٰذَا غُلٰمٌ ـــ وَشَرَوْهُ بِثَمَنٍ بَخْسٍ دَرَاهِمَ مَعْدُوْدَةٍ**

**ديوسف عليه السلام د کوهی نه راوتل اود قافلې والا په لاس خرڅيدل:-** رونړو خوحضرت يوسف عليه السلام په کوهی کښې اوغورزولو اولاړل.دلته په هغه باندې درې ورځې په دې تياره کوهی کښې يوازې تيرې شوې. د محمدبن اسحاق رحمه الله بيان دې چه رونړو په کوهی کښې اوغورزولو نو دتماشې کتلو د پاره ټوله ورځ هغې سره خواکې ګرځيدل چه اوګوري چه هغه څه کوی او ورسره څه کولې شي.د الله ﷻ په فضل سره يوه قافله هلته تيريده هغوی خپل سقی (د اوبوراوړوسړی) د اوبود پاره اوليکلو هغه هم په دې کوهی کښې ډولچه واچوله حضرت يوسف عليه السلام د هغې رسئ کلکه اونيوله اود اوبو په ځائ هغوی بهر

---

[1] صحيح بخاری کتاب التفسير سورة يوسف باب قوله ﴿قال بل سولت لکم انفسکم امرا فصبرجميل﴾: ۴۶۹۰، صحيح مسلم: ۲۷۷۰.

راووتل. دهغه په کتلو سره نی زړه خوشحاله شواوبغیر د چغې وهلوپاتې نه شویه اوچت اواز نی اوونیل سبحان الله داخوان هلك دې. دویم قراءت د دې ﴿يٰبُشْرٰى﴾هم دې.سدی رحمه الله وائی بشری سقی د رالیګلی شوی نوم هم وو هغه د ده نوم واخستلو اوچغې سره نی خبرورکړوچه زما په ډولچه کښې خو یوماشوم راغلو. خود سدی رحمه الله دا قول غریب دې. په داسې قراءت باندې هم دا معنی کیدې شی. د دې اضافت د خپل خان نه اویا اضافت ساقط ده هم ددې تائیدی قراءت ﴿يٰبُشْرٰى﴾سره کیږی لکه چه عرب وائی ﴿یانفس اصبري اویاغلام اقبل﴾ د اضافت حرف نی ساقط کړو دې وخت کښې کسره ورکول هم جائز دی او رفع ورکول هم نودا د دې قبیل نه دې او دویم قراءت د دې تفسیر دې. والله اعلم.

دوَأَسَرُّوهُ بِضَاعَةً مطلب::دې خلقو یوسف علیه السلام لکه د مال په شان پټ کړو. د قافلې په نورو خلقو باندې نی دا راز ښکاره نه کړو بلکه دائې اوونیل چه مونږ د کوهی سره د خلقو نه دا واخستلو هغوی مونږ ته دې راکړو دې د پاره چه هغوی هم حصه دار جوړنه شی.یوقول دا هم دې چه د دې نه مراد دا دی چه د یوسف علیه السلام رونړود هغه شان پټ کړو اوحضرت یوسف علیه السلام هم خپل خان ښکاره نه کړو چه داسې نه وی چه دا خلق نی قتل نه کړی په دې وجه د رونړو په لاس دې چپ چاپ خرڅ شو. سقې ته هغه اوونیل چه ده آواز ورکړو راونی غوښتل او هغوی په یو څو پیسو باندې یوسف علیه السلام خرڅ کړو. ([1])الله ﷻ د هغوی د دې حرکت نه ناخبره نه وو هغه ښه پوره پالنه کوله. هغه قادر وو چه دا راز نی ښکاره کړې وو خود هغه حکمتونه هغه سره وی د هغه تقدیرهم داسې لیکلې شوې وو مخلوق اوامرهم دهغه دې هغه رب العالمین او د برکتونو والا دې. په دې کښې حضور ﷺ ته هم په یوشان سره تسکین ورکړو چه زه وینم چه دا قوم تاته تکلیف درکوی زه قادریم چه تا د دوی نه خلاص کړم او دوی غرق کړم خو زما کار حکمت سره وی. بې فکر اوسیږه ډیر زر به تا غالب کړم او په مزه مزه به هغوی ذره ذره کړم. لکه څنګه چه د یوسف علیه السلام اود هغه د رونړو په مینځ کښې زما حکمت کارکولو تردې چه آخرکار هغوی دحضرت یوسف علیه السلام په وړاندې ټیټ شو اود هغه د مرتبې اقرار نی اوکړو.

**یوسف علیه السلام ئې ډیرکم قیمت خرڅ کړو:**: په ډیر کم قیمت باندې رونړو خرڅ کړو د ناقص څیز په بدله کښې رور رور ورکړو اود دې هم هغوی ته څه پرواه نه وه. که چرې د هغوی نه نی بالکل بې قیمته غوښتلې وو نو بیا به نی هم ورکولو. دا هم ونیلی شوی دی چه مطلب دا دې چه د قافلې والا دې په ډیر کم قیمت باندې واخستلو خودا څه ډیر صحیح نه دی. څکه چه هغوی خو د ده په کتلو خوشحالئی کړې وې او د مول (یعنی سرمایه اصل زر وغیره) په شان نی دې پټ ساتلې وو نوکه چرې دوی ته د هغه بې رغبتی وه نو هغوی به داسې ولې کول. نو ترجیح دې خبرې ته ده چه دلته د رونړو حضرت یوسف علیه السلام په دومره پریوتی نرخ باندې خرڅ کړو.د ﴿بَخْسٍ﴾ نه مراد حرام اوظلم هم دې.خو دلته هغه مراد نه دې اخستې شوې څکه چه د دې قیمت د حرمت علم خو هرچا ته دې. حضرت یوسف علیه السلام نبی بن نبی بن نبی بن خلیل الله علیهم السلام وو.اوهغه خو کریم بن کریم بن کریم بن کریم وو. نو دلته مراد په ناقصو کمو لږو کوټه پیسو باندې بلکه هسې په نامه په پیسوباندې خرڅ کړو سره د دې چه دا ظلم اوحرام هم وو. رور خرڅوی او هغه هم په یوڅوکوټه پیسو.د یوڅو درهمو په بدله کښې یعنی شلو دوه ویشتو یاڅلویښتو درهمو په بدله کښې. دوی پیسې واخستې او په خپل مینځ کښې تقسیم کړې ([2]) اود هغه ورته هډو پرواه نه وه. دوی ته نه وه معلومه چه الله ﷻ سره د هغه څومره قدر دې هغوی ته څه پته وه چه دا د الله ﷻ نبی جوړیدونکې دې. حضرت مجاهد رحمه الله وائی چه د دې دومره هرڅه کولونه

---

[1]) الطبری:۱۶/۶.

[2]) ایضا:۱۶/٤.

پس هم هغوی صبر نه شواو قافلې پسې شو او هغوی ته نې اوونیل گورنې په دې غلام کښې دتختیدو
عادت دې دې کلك اوتړنی چرته ستاسو د لاسه هم اونه تختې. دغه شان په تړلوتړلو مصر ته اورسیدو.
هلته هغوی دې بازار ته د خرڅولو د پاره بوتلو. دغه وخت حضرت یوسف ؑ اوفرمانیل ما چه څوك
واخلی هغه به خوشحاله وی نو عزیز مصر هغه واخستو او هغه هم مسلمان وو.

وَقَالَ الَّذِي اشْتَرٰىهُ مِنْ مِّصْرَ

| او اوونیل | هغه سړی | چې اخستې ئې وو هغه | د مصر

|او چا چې هغه په مصر کښې واخستو اِنو خپلې ښځې ته ئې اوونیل اچې دده ډیر خیال

لِامْرَاَتِهٖٓ اَكْرِمِيْ مَثْوٰىهُ عَسٰٓى اَنْ يَّنْفَعَنَآ اَوْ

ښځې خپلې ته | عزت کوه | د میلمستیا د دهٔ | کیدې شی | چې فائده اورسوی مونږ ته | یا به

ساته اکیدیشی چې زمونږ دپاره سود مند ثابت شی ایائې په خوئی توب اونیسو

نَتَّخِذَهٗ وَلَدًا ۭ وَكَذٰلِكَ مَكَّنَّا لِيُوْسُفَ

اونیسو مونږه هغه لره | خوئې | او په دې طریقه | مونږ ځائې ورکړو | یوسف ته

...... |اودغه شان مونږ حضرت یوسف ؑ ته په دغې ملک کښې ځائې ورکړو............. ....

فِي الْاَرْضِ ۡ وَلِنُعَلِّمَهٗ مِنْ تَاْوِيْلِ الْاَحَادِيْثِ ۭ وَاللّٰهُ غَالِبٌ

په زمکه کښې| اودپاره ددې چې اوښایو مونږ هغه ته | تعبیر بیانول د(خوب) د خبرو | او الله | غالب دې

.............چې مونږ دهٔ ته د خوب د خبرو تعبیر اوښایو| او الله ﷻ په خپل هر کار کښې غالب دې | خو

عَلٰٓي اَمْرِهٖ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝ وَلَمَّا بَلَغَ

په کار خپل باندې| لیکن | زیات دخلقو نه | نهٔ پوهیږی | اوهرکله چې | اورسیدو هغه

زیات خلق په دې نهٔ پوهیږی | ..............اوهرکله چې هغه پوخ ځوان شو نو

اَشُدَّهٗٓ اٰتَيْنٰهُ حُكْمًا وَّعِلْمًا ۭ وَكَذٰلِكَ

قوت خپل ته| نوورکړو مونږهغه ته| دفیصلې کولو طاقت | او علم | او دغه شان

مونږ ورله د فیصلې قوت ورکړو |او (نور) علم مو ورته ورکړوااو مونږ هم دغسې بدلې ورکوو

نَجْزِي الْمُحْسِنِيْنَ ۝

مونږبدله ورکوو| نیکانو خلقوله |

نیکانو خلقو ته|

**قوله تعالى: وَقَالَ الَّذِي اشْتَرٰىهُ مِنْ مِّصْرَ لِامْرَاَتِهٖٓ**

**دحضرت یوسف دمصر په بازار کښې نیلامی** ۔درب مهربانئی ته گوره چا چه دې په مصر کښې واخستو
نو الله ﷻ د هغه په زړه کښې د یوسف ؑ عزت او وقعت واچولو. هغه د ده نوراني مخ ته په کتو سره
پوهه شو چه په ده کښې خیر او صلاح ده. دا دمصر وزیر وو او د ده نوم قطفیر وو، څوک وائی اطفیر وو.
د ده د پلار نوم روحیب وو. دې د مصر د خزانو خزانچی وو. د مصر حکومت دغه وخت کښې د ریان بن
ولید په لاس کښې وو. دا د عمالیق نه یو سړې وو. دعزیز مصر دبی بی نوم راعیل وو څوک وائی زلیخا

وه. دا د رعابیل لور وه. د ابن عباس ﷺ بیان دې چه په مصر کښې دې چا واخستو د هغه نوم مالك بن ذعر بن قریب بن عنق بن مدیان بن ابراهیم وو. والله اعلم.

**درې اوښیاران:**:حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمائي د ټولونه زیات لرې نظر لرونکې او په انجام باندې نظر ساتونکې او په عقل سره کتونکی درې سړي تیرشویدی یوخو هم دا عزیز مصر چه هم په یو نظر ئې یوسف ﷺ اوپیژندلو او په تلوسره ښځې ته اوونیل چه دې په آرام سره اوساته او دویم هغه ښځه چا چه حضرت موسی ﷺ په یونظر لیدو سره اوپیژندو لاړه او خپل پلار ته ئې اوونیل که تاته د سړي ضرورت دې نو هم ده سره معامله اوکړه دې قوي او امانت دار سړې دې. دریم حضرت ابوبکر صدیق ﷺ چه هغوي د دنیا نه د تلو په وخت خلافت د حضرت عمر ﷺ په شان سړي ته حواله کړو.[1]

**د الله ﷻ یو کار هم دحکمت نه خالي نه وي:**:دلته الله ﷻ یو بل احسان بیانوي چه د رونړود تیرونه خو مونږ راخلاص کړو بیا مونږ مصر ته راوستلو اودلته مو دهغه قدمونه کلك کړل ځکه چه اوس زمونږ دا اراده پوره کیدونکې وه چه مونږ ده ته د خوب د تعبیر څه علم ورکړو. د الله ﷻ اراده څوك روستوکولې شي؟ څوك ئې منع کولې شي؟ څوك ئې خلاف کولې شي؟ هغه په ټولو باندې غالب دې او ټول د هغه په وړاندې عاجز دي څه چه هغه غواړي نو کوي چه څه اراده کوي نو کیږي خو اکثر خلق د علم نه خالي وي نه د هغه حکمت مني او نه د هغه په باریکویاندې د هغوي نظر وي اونه د هغه په حکمتونویاندې پوهیدلې شي.

**د نبوت په عمر کښې اقوال:**: کله چه د هغه عقل کامل شو کله چه بدن خپل غتیدل پوره کړل نو الله ﷻ هغه ته پیغمبری ورکړه او هغه ئې ده سره خاص کړه. دا څه نوې خبره نه ده مونږ نیکوکاروته دغه شان ښکلې بدله ورکوو. وائي چه دې نه مراد درې دیرش کاله (۳۳) عمر دې یا د دیرشو(۳۰) نه لږشان زیات یاشل (۲۰) یاڅلویښت (۴۰) یا پنځویشت (۲۵) یا دوه ویشت (۲۲) یا اتلس (۱۸) یا دا مراد چه ځوانئې ته اورسیدو اودې نه علاوه نور اقوال هم دي. والله اعلم.

| | |
|---|---|
| الَّتِيْ | وَرَاوَدَتْهُ |
| هغې ښځې | او غولول اوغوښتل ده لره |

اودکومې ښځې په کور کښې چې (یوسف) اوسیدلو اهغې دخپل مطلب دپاره

| الْاَبْوَابَ | وَغَلَّقَتِ | عَنْ نَّفْسِهٖ | فِيْ بَيْتِهَا | هُوَ |
|---|---|---|---|---|
| دروازې | او هغې بندې کړې | د دهٔ د نفس(د حفاظت)نه | په کور دهغې کښې وو | چې هغه |

دهغه غولول شروع کړل ..............او (یوه ورځ) وروته ئې پورې کړل

| رَبِّيْٓ | اِنَّهٗ | مَعَاذَ اللّٰهِ | قَالَ | هَيْتَ لَكَ | وَقَالَتْ |
|---|---|---|---|---|---|
| رب زما دې | بیشکه هغه | الله | پناه غوارم په | اوونیل هغه | راځه زر کوه | اووې ونیل |

او ورته ئې اوونیل چې راځه اهغه ورته اوونیل اچې زهٔ په الله ﷻ سره پناه غوارم اهغه زما مربی دې

| الظّٰلِمُوْنَ | لَا يُفْلِحُ | اِنَّهٗ | مَثْوَايَ | اَحْسَنَ |
|---|---|---|---|---|
| ظالمان خلق | نهٔ کامیابیږي | بیشکه | او ساتلم زهٔ | هغه په ښهٔ شان |

هغه زهٔ څنګه ښهٔ ساتلې یم ازهٔ به څنګه دا کار کوم؟، او ظالمان به یقینا نهٔ کامیابیږي

[1] حاکم:۲/۳۴۵-۳۴۶.

قوله تعالى:: وَرَاوَدَتْهُ الَّتِي هُوَ فِي بَيْتِهَا عَن نَّفْسِهِ
د عزیزمصرد ښځې یوسف عليه السلام ته د بدئ دعوت ورکول-عزیز مصر چا چه دې اخستې وو هغه ډیر په ښه شان سره د اولاد په شان ساتلې وو خپل کوروداني ته نی هم په ډیر تاکید سره وئیلي وو چه ده ته هیڅ قسم تکلیف نه وی په عزت اواکرام سره دې اوساته.ددې ښځې په نیت کښې خرابي راخې. د یوسف عليه السلام په حسن باندې مئینېږي دروازې بندوی اوسنګارکوی اوحضرت یوسف عليه السلام غلط کار طرف ته راغواړی خو یوسف عليه السلام ډیر په سختئ سره انکار کوی او هغه نااميده کوی. یوسف عليه السلام فرمائي چه ستاخاوند زما سردار دې دغه وخت به د مشرانو دپاره دمصر په محاوره کښې دا لفظ استعمالیدو یوسف عليه السلام اوفرمائیل ستا دخاوند په ما مهربانئ دی هغه ماسره په ښه سلوك اواحسان سره ملاوېږی نوبیا څنګه ممکن دی چه زه د هغه خیانت اوکړم. یادساتئ یوځیز په غلط ځائ کیخودو سره د ښېګړې نه محروم کیږي.

(هَيْتَ لَكَ) کښې قراتونه او مطلب:: ته بعضې خلق د سرياني ژبې لفظ وائي بعض د قبطی ژبې بعض دا غریب لفظ ګڼرې او بعض د اهل حوران لغت ښائی(۱)کسائی به هم دا قرآت خوښولو او وئیل به نی د اهل حوران دا لغت دې په حجاز کښې راغلې دې. داهل حوران یوعالم دا وئیل چه دا زمونږ لغت دې.امام ابن جریر رحمه الله ددې په شهادت کښې شعر هم پیش کړې دې. د دې دویم قراءت (هَيْتَ) هم دې د رومبی قراءت معنی خو د راتلو ده. د دې معنی دا ده چه زه ستا د پاره تیاره یم. بعضې خلق د دې قرائت انکارکوی. یو قراءت(هَئِيتَ) هم دې دا قرائت غریب دې. یوقراءت (هیت) هم دې د عاموخلقو هم دا قرائت دې په دې باندې هم په شهادت کښې شعر پیش کوی. ابن مسعود رضي الله عنه وائی د قاریانو قراتونه نیزدې نیزدې دی چه څنګه خودلې شوې وی لولئ. د ژور والی نه اختلاف نه اولعن طعن او اعتراض نه بچ شئ.د دې لفظ هم دغه معنی ده چه راشه اومخامخ شه وغیره، بیا هغوی دا لفظ اولوستلو نوچا اووئیل دا بل شان هم لوستلې شی، هغوې اوفرمائیل صحیح ده، خو ما چه څنګه زده کړې دې هغه شان به ئې لولم (۲) یعنی (هیت) نه (هَيْتِ) دا لفظ تذکیر تأنیث واحد تثنیه او جمع د ټولو د پاره یو شان راځي. لکه (هیت لک هیت لکم هیت لکما هیت لکن هیت لهن)

وَلَقَدْ هَمَّتْ
| اوپه تحقیق هغې اراده اوکړه

بِهٖ ۚ وَهَمَّ بِهَا لَوْلَآ اَنْ رَّاٰ بُرْهَانَ رَبِّهٖ ۭ كَذٰلِكَ
په هغه باندې | او اراده به کړې وه دهٔ | په هغې باندې | که نهٔ وې | لیدلې هغه | دلیل | د رب خپل | هم دغه شان
اوهغه (ښځه)ده ته وراوړاندې شوه | اویوسف به هم وراوړاندې شوې وو | که د خپل رب دلیل ئې لیدلی نهٔ وې

لِنَصْرِفَ عَنْهُ السُّوْٓءَ وَالْفَحْشَاۗءَ ۭ اِنَّهٗ مِنْ عِبَادِنَا
چې لرې اوساتو مونږه | د هغه نه | بدی | او بې حیائی | بیشکه هغه | د بندګانو زمونږ نهٔ وو
دغه شان مو څکه اوکړل | چې هرقسم بدئ او بې حیائی ترې لرې اوساتو | یقینا دې زمونږ د

(۱) صحیح بخاری کتاب التفسیر سوره یوسف باب قوله تعالی (وراودته التی هو فی بیتها عن نفسه....)قبل حدیث:۴۶۹۲.
(۲) صحیح بخاری حواله سابقه: ۴۶۹۲، حاکم:۳۴۶/۲.

| الْمُخْلَصِيْنَ ۝ |
|---|
| چې خالص کړې شوی دی. |
| مخلصانو بندګانو نه دی. |

**قوله تعالى:: وَلَقَدْ هَمَّتْ بِهِ**

**د یوسف** ﷺ **د بدکارنه انکار:-** دسلفود یوې ډلې نه خود دې آیت باره کښې هغه روایت دې کوم چه ابن جریر رحمه الله وغیره راوړلې دې. اوونیلې شوی دی دیوسف ﷺ قصددې ښځې سره صرف د نفس اندیښنه وه. د بغوی په حدیث کښې دی رسول الله ﷺ فرمانی چه الله ﷻ فرښتوته فرمانی چه کله زما یوبنده د نیکئی اراده اوکړی نوتاسو د هغه نیکی لیکئ اوچه کله هغه نیکی اوکړی نو دغه شان لس نیکئی لیکئی اوکه د یوې بدئی اراده اوکړی او بیا هغه اونه کړی نود هغه د پاره نیکی لیکئی خکه هغه زما د وجې دغه بدی پریخوده اوکه چرې هغه بدی ئی اوکړه نود دې برابر ئی اولیکئی. د دې حدیث نور هم دی، اصل په بخاري او مسلم کښې هم دی. [1]

**د وَهَمَّ مطلب::** یو قول دې چه حضرت یوسف ﷺ د هغې دوهلو اراده اوکړه، یو قول دې چه هغه ئی د ښځې جوړولو اراده اوکړه. یو قول دې چه هغه اراده کوله که دلیل ئی نه ووکتلې خودلیل کتلو سره ئی اراده اونه کړه.خو په دې قول کښې د عربئی ژبې په حیثیت سره کلام دې. لکه چه امام ابن جریر رحمه الله وغیره بیان کړې دې. دا خو وو د یوسف ﷺ د قصد اقوال او هغه دلیل کوم چه هغوی اولیدلو د هغې متعلق هم اقوال اوګورنی.وائی چه خپل پلار حضرت یعقوب ﷺ ئی اولیدلو لکه چه هغه خپله ګوته په خله کښې ورکړې ولاړ دې اود حضرت یوسف ﷺ په سینه باندې ئی خپل لاس اووهلو. وائی د خپل سردارخیالی تصویر ئی مخې ته راغلو،وائی چه دهغه نظر د چت طرفته شو څه ګوری چه په دې باندې دا آیت لیکلې شوې دې ﴿وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنَىٰ إِنَّهُ كَانَ فَاحِشَةً وَسَاءَ سَبِيلًا ۝﴾ خبردار زناته نیزدې کیږه مه دا ډیر د بې حیائی او د الله ﷻ دغضب کاردې او هغه ډیره خرابه لار ده.وائی چه درې آیاتونه لیکلی وو یو دا ﴿وَإِنَّ عَلَيْكُمْ لَحَافِظِينَ ۝﴾ په تاسو باندې ساتندونکی مقرر دی دویم ﴿وَمَا تَكُونُ فِي شَأْنٍ﴾ تاسو چه په کوم حال کښې یئ الله ﷻ تاسو سره دې او دریم ﴿ أَفَمَنْ هُوَ قَائِمٌ عَلَىٰ كُلِّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ ۗ وَجَعَلُوا لِلَّهِ شُرَكَاءَ قُلْ سَمُّوهُمْ ۚ أَمْ تُنَبِّئُونَهُ بِمَا لَا يَعْلَمُ فِي الْأَرْضِ أَم بِظَاهِرٍ مِّنَ الْقَوْلِ ۗ بَلْ زُيِّنَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا مَكْرُهُمْ وَصُدُّوا عَنِ السَّبِيلِ ۗ وَمَن يُضْلِلِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِنْ هَادٍ ۝﴾ الله ﷻ د هر سړی په هرعمل باندې خبر دې اوګوری. وائی چه څلور آیاتونه ئی لیکلې اولیدل. درې هم دا چه پورته تیرشو اود زنا دحرمت کوم وړاندې د دې نه تیرشو.وائی چه یو آیت ئی دزنا په ممانعت باندې په دیوال لیکلې اولیدو.وائی چه یوه نښه وه چه هغه ئی د خپلې ارادې نه منع کولو.ممکن دې چه هغه صورت د حضرت یعقوب ﷺ وی یا د هغه د اخستونکی صورت وی اوممکن دی چه دتنبیه آیت وی. څه داسې خاص دلیل نشته چه په یوه فیصله باندې مونږ اورسیدې شو. نو زمونږ د پاره ډیره صحیح لار هغه ده چه دا هم داسې مطلق پریږدو څکه چه د الله ﷻ فرمان هم اطلاق دې. (دغه شان قصد هم).

بیافرمانی چه مونږ هغه وخت هغه ته یو دلیل اوخودلو اود بدئی نه مو بچ کړودغه شان دهغه په نورو کارونوکښې هم مونږ امداد کوو.هغه د بدو نه اودبې حیایو نه محفوظ ساتواوهغه خو ووهم زمونږ برګزیده خوښ کړې شوې بهترین اومخلص بنده. دالله ﷻ د طرف نه دې په هغه باندې درود اوسلام وی.

---

[1] صحیح بخاری کتاب التوحید باب قوله تعالی ﴿یریدون ان یبدلوا کلام الله﴾:۷۵۰۱، صحیح مسلم:۱۲۸-۱۲۹، الایمان لابن منده:۳۷۶، ابن حبان:۳۷۹، احمد:۲/۳۱۵.

وَاسْتَبَقَا الْبَابَ وَقَدَّتْ قَمِيصَهُ

| او دواړو منډې کړې | دروازې ته | او اوشلوله هغې | قمیص دهغه

| او دواړو (یوسف او ښځې) وړاندې روستو دروازې طرف ته منډه

مِنْ دُبُرٍ وَّأَلْفَيَا سَيِّدَهَا لَدَا الْبَابِ ۚ قَالَتْ مَا جَزَاءُ مَنْ

دشاد طرفنه| اوبیاموندو دواړو| خاوند دهغې| نزدې د دروازې سره| اووئیل هغې |څه ده سزا| د هغه چا

کړه | اوهغې تړې قمیص د شاد طرف نه اوشلولو| اودواړو دهغې خاوند دروازې

أَرَادَ بِأَهْلِكَ سُوْٓءًا إِلَّآ أَنْ يُّسْجَنَ أَوْ عَذَابٌ

چې اراده ئې اوکړه | په کور والا ستا | د بدئ | ماسوا ددې نه | چې قید کړې شي هغه | یا | عذاب

سره (ولاړ) اولیدو (په دې باندې) هغې (ښځې) اووئیل | دهغه سړي څه سزاده |چې ستا د کور میرمنې ته بد نیته شي

أَلِيمٌ۝ قَالَ هِيَ رَاوَدَتْنِي عَنْ نَّفْسِي وَشَهِدَ شَاهِدٌ

دردناک||اووئیل یوسف| دې ښځې وغولولم زۀ | د خپل ځان (د حفاظت) نه|اوګواهي پیش کړه| یو ګواه

خو بس چې جیل کښې واچولې شي| یا بل څه دردناک عذاب ورته ورکړې شي|یوسف ؑ اووئیل دې زۀ د خپل غرض د پاره غلولم

مِّنْ أَهْلِهَا ۚ إِنْ كَانَ قَمِيصُهُ قُدَّ مِنْ قُبُلٍ فَصَدَقَتْ وَهُوَ

دخپلوانو دهغې نه| که وی |قمیص دهغه|شلیدلې|د مخې طرفنه| نو دا به صادقه وی | او هغه به

اودهغې د کورنې (د خلقو) نه یو کس ګواهي ورکړه | که د حضرت یوسف ؑ قمیص د مخې طرفنه شلیدلې وی

مِنَ الْكٰذِبِيْنَ۝ وَإِنْ كَانَ قَمِيصُهُ قُدَّ مِنْ دُبُرٍ فَكَذَبَتْ وَهُوَ

ددروغژنو څخنی وی| اوکه وی | قمیص دهغه| شلیدلې| دشاد طرفنه| نو دا به دروغژنه وی | او هغه به

نو ښځه رښتینې او سړې دروغژن دې |اوکه د هغه قمیص د شا طرفنه شلیدلې وی |نو ښځه دروغژنه ده

مِنَ الصّٰدِقِيْنَ۝ فَلَمَّا رَا قَمِيصَهُ قُدَّ مِنْ دُبُرٍ قَالَ

د رښتینو څخنی وی | هر کله چې ئې|اولیدو| قمیص دهغه| چې شلیدلې دې|د شا د طرفنه|نو هغه او وئیل

او سړې ریښتونې دې |کله چې هغه (د یوسف) قمیص دشا د طرفنه شلیدلې اولیدونو وې وئیل دا ټول

إِنَّهُ مِنْ كَيْدِكُنَّ ۖ إِنَّ كَيْدَكُنَّ عَظِيمٌ۝ يُوسُفُ أَعْرِضْ

بیشکه داکار | د مکر ستاسو نه دې | بیشکه | مکر ستاسو | دیر لوئ دې |ائې یوسفه | مخ واړوه

ستاسو د ښځو مکرونه دی| بیشکه ستاسو فریبونه دیر لوئې دی| ائې یوسف ؑ ! دا خبره شاته اوغورزوه

عَنْ هٰذَا ۟ وَاسْتَغْفِرِي لِذَنْبِكِ ۚ إِنَّكِ كُنْتِ مِنَ الْخٰطِئِيْنَ۝ ع

ددې خبرې نه| اوائې ښځې ښښنه اوغواړه ته| د پاره د ګناه خپلې| بیشکه چې ئې ته | د خطا کارونه

اوائې ښځې تۀ د خپلې ګناه په باره کښې معافي اوغواړه |بیشکه (په دې معامله کښې) ته خطاواره یې

**قوله تعالی:: فَلَمَّا رَا قَمِيصَهُ قُدَّ مِنْ دُبُرٍ**
**دیوسف ؑ دپاکدامنئی ګواهی:-** حضرت یوسف ؑ خپل ځان د بچ کولو د پاره دروازې ته ورمنډې کړې اودې ښځې دهغه دنیولو دپاره هغه پسې شاته ورمنډې کړې. د روستونه قمیص دهغې لاس له

راغلو په زوره نې خپل خان طرف ته راښکلو د څه په وجه چه یوسف ﷺ روستوطرف ته راغورزيدو ته نيزدې شو خو هغه هم ورانديې طرف ته زور لګولې وو اومنډه نې وهله پدې کښې قميص د شانه بالکل داسې اوشليدو اودواړه دروازې ته اورسيدل اوهلته دښځې خاوندموجودوو.په کتلو سره هغې يو چال اوچلولو او ټول الزام نې د حضرت يوسفﷺ په سروراوتپلو. او خپل خان نې صفا بلکه خپل خان نې مظلوم ثابت کړو.اوچه څله نې جوړه کړه او خپل خاوند ته نې قصه شروع کړه او خپله صفائى بيانولو سره وانى ګورنې حضور چه ستاسو ښځې سره څوك د بدکارنې اراده اوکړى د هغه څه سزا پکار دی؟ سخت قيد يا خراب مرګ ددې نه خو هيڅ کله د دې جرم کمه سزا نه شى کيدلې. اوس چه حضرت يوسفﷺ خپل عزت په خطره کښې اوليدلو اود خيانت ډير خراب تهمت نې په خان لګيدلې اوليدلو نود خپل خان نه الزام لرې کولو اوصفا اوربښتونې حقيقت ښکاره کولو دپاره اوفرمائيل چه حقيقت دا دې چه هم دا ماپسې شانه لګيدلې وه زما په تختيدو باندې زه رانيولم تردې چه زما لمن نې هم اوشلوله. هم د دې ښځې د قبيلې نه يو ګواه ګواهى ورکړه او سره د ثبوت اودليل نې هغوى ته اوونيل چه شليدلې قميص اوګوره که هغه مخامخ شليدلې وى نو قصوروار سړې دې اوښځه چه خپله بې ګناهى بيانوى هغه ربښتونى ده.او په حقيقت کښې هغه ربښتونى ده. اوکه د ده قميص د شانه شليدلې وى نود ښځې په دروغو اودسړى په ربښتياؤکښې هيڅ کلام نشته. ښکاره خبره ده چه ښځه پرې مئينه وه دې د هغې نه اوتختيدو هغې هم ورمنډې کړې قميص نې په لاس ورغلو هغې خپل خان طرف ته راښکلو او يوسف ﷺ خپل خان طرف ته راښکلو نو هغه د روستو طرف نه اوشليدلو.

**دا ګواه بالغ عاقل سړې وو::** وانى چه دا ګواه لوئ سړې وو د هغه په مخ باندې ږيره وه اودا د عزيز مصر خاص سړې وواود پوره عمر سړې وو.اودزليخا د تره خوئ وو.زليخاه بادشاه وخت ريان بن وليد خورزه وه نوبو قول ددې ګواه متعلق دا دې اوبل قوا دادې چه دايو پنې څکونکې ماشوم وو او په ګواره کښې زنګيدونکې بچې وو.(۱)

ابن جرير کښې دى چه څلورو ماشومانو په وړوکوالى کښې خبرې کړى دى. په دې پوره حديث کښې : هغه ماشوم هم ذکر دې چا چه د ربښتونى يوسفﷺ د پاکدامنئ ګواهى ورکړې وه. (۲)ابن عباس ﷺ فرمائى چه څلورو ماشومانو خبرې کړى دى دفرعون ښځې دمشاطه خوئ،دحضرت يوسف ﷺ ګواهى ورکونکى، د جريج صاحب او حضرت عيسى ﷺ. مجاهدﷺ خو بالکل يوه غريبه خبره کړې ده. هغه وانى چه دا صرف د الله ﷻ حکم وو څوك انسان نه وو. هم د دې تجويز مطابق چه کله د زليخا خاوند اوکتل نود يوسف ﷺ قميص نې د شانه شليدلې اوليدلو. هغه ته ثابته شوه چه يوسفﷺ ربښتونې دې او دهغه ښځه دروغژنه ده.

**دزليخاخاوند هم ديوسف ﷺ د پاکدامنئ اقراراوکړو::** هغه په يوسف صديقﷺ باندې تهمت لګوى نو ناځاپى دهغه د خُلې نه اووتل چه داخو ستاسو د ښځو دهوکه ده په دې خوان باندې ته تهمت لګوې اود دروغو الزام پرې لګوې. ستا دا خبرې کول خو په چکرکښې اچونکى دى.بياحضرت يوسفﷺ ته وانى چه ته دا واقعه هيره کړه اوپرېږدنې د دې نامراده واقعه بيا د سره ذکر مه کوه. بيا خپلې ښځې ته وانى چه ته دخپلې ګناه نه توبه اوباسه.نرم سړې وويا نرم اخلاق نى وو اوياهغه پوهيدلوچه ښځه دمعذوره ګنړلو لائقه ده هغه چه څه ليدلې دى نوپه هغې باندې صبر کول ګران دى په دې وجه نى هغې ته هدايت اوکړوچه دخپلې خرابې ارادې نه توبه اوکړه سراسر هم ته خطاکاره نې اوبخپله بيا الزام دنورو په سر ايږدې.

---

(۱) الطبرى:۵۶/۱۶.

(۲) ايضا:۵۶/۱۶وسنده حسن.

وَقَالَ نِسْوَةٌ فِي الْمَدِينَةِ امْرَاَتُ الْعَزِيزِ تُرَاوِدُ فَتٰهَا عَنْ نَّفْسِهٖ ۚ

اواووئیل ښځو|په ښار کښې|اچې ښځه دعزیز(دمصر)|غولول غواړي|غلام خپل|ددهٔ دنفس(د حفاظت نه)

په ښار کښې ښځو وینا شروع کړه اچې دعزیز مصر ښځه خپل مريي دخپل مطلب دپاره غلوي

قَدْ شَغَفَهَا حُبًّا ۭ اِنَّا لَنَرٰىهَا

چې عاشق شوي دي زړه د هغې| د هغه په محبت کښې | بیشکه مونږه | خامخاوینو هغې لره

دهغه په مینه کښې ډیره لیونئ شوې ده|مونږ وینو گوروچې هغه په ښکاره گمراهئ کښې ده| چې هغې

فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ۝ فَلَمَّا سَمِعَتْ بِمَكْرِهِنَّ اَرْسَلَتْ اِلَيْهِنَّ

په گمراهئ| ښکاره کښې |نوهرکله چې | واوریدو هغې | مکردهغوئ انو اولیږو هغې | هغوئ ته

دنورو ښځو د مکرنه ډکې خبرې واوریدې | نو هغوئ ئې (دوډئ له) راوغوښتې | اوهغوئ ته ئې

وَاَعْتَدَتْ لَهُنَّ مُتَّكَاً وَّاٰتَتْ كُلَّ وَاحِدَةٍ مِّنْهُنَّ سِكِّيْنًا

او تیارئې کړو|دپاره دهغوئ|(تکیه دار)مجلس |او ورنې کړه | هرې یوې ښځې ته |دهغوئ نه | چاړه

تکیه گانې کیخودې |او هرې یوې ته ئې چاړه( په لاس کښې ) ورکړه |اوکله چې هغوئ میوې پریکولې

وَّقَالَتِ اخْرُجْ عَلَيْهِنَّ ۚ فَلَمَّا رَاَيْنَهٗٓ اَكْبَرْنَهٗ

اووې وئیل| راوخه په هغوئ | نوهرکله چې | اولیدوهغوئ هغه لره | نو حیرانې شوې

(نو ) وې وئیل چې (انې یوسف ﷺ) لږ ورته رامخامخ شه | نوکله چې هغوئ حضرت یوسف ﷺ

وَقَطَّعْنَ اَيْدِيَهُنَّ وَقُلْنَ حَاشَ لِلّٰهِ مَا هٰذَا بَشَرًا ۭ اِنْ هٰذَآ اِلَّا

اوپرې ئې کړل | لاسونه خپل | اووې ونیل | پاکی ده الله لره | نهٔ دي دا | انسان | نهٔ دي دا مکر ده

اولیدو انو هک بک پاتې شوې| اوخپل لاسونه ئې (د حیرت په وجه) غوڅ کړل |اودانې اووئیل چې سبحان الله

مَلَكٌ كَرِيْمٌ ۝ قَالَتْ فَذٰلِكُنَّ الَّذِيْ لُمْتُنَّنِيْ

یوه فرښته | عزتمنده | اووئیل هغې| پس دادې(انې ښځو)| هغه(خلمي)| چې ملامته کوئ تاسو مالره

داخو بنې ادم نهٔ ښکاري |دا خو بس یو نوراني فرښته ده |دعزیز ښځې اووئیل چې (اومو کتل) داستاسو

فِيْهِ ۭ وَلَقَدْ رَاوَدْتُّهٗ عَنْ نَّفْسِهٖ فَاسْتَعْصَمَ ۭ وَلَئِنْ

په باره ددهٔ کښې | اوپه تحقیق | وغولولو ما دې |ددهٔ د نفس(د حفاظت)نه|اخودهٔ خان اوساتو|اوکه چرې

هغه زلمې دې|چې ددهٔ په باره کښې مو په ماپسې خبرې کولې|اوبیشکه مادې خپل خان ته راوغوښتو|خو دهٔ رانه

لَّمْ يَفْعَلْ مَآ اٰمُرُهٗ لَيُسْجَنَنَّ وَلَيَكُوْنًا

اونهٔ کړودهٔ | هغه کار | چې زهٔ ئې حکم کوم دهٔ ته |انو خامخا به قید کړې شي دې |او خامخا به شي دې

خان بچ کړو|اوکه اوس هم دهٔ زما حکم اونهٔ منلو انو خواه مخواه به جیل ته اوغورزولې شي |اوډیر بې

مِّنَ الصّٰغِرِيْنَ۝ قَالَ رَبِّ السِّجْنُ اَحَبُّ اِلَيَّ مِمَّا يَدْعُوْنَنِيْٓ

د ذلیلانو نه | اوونیل یوسف | اني ربه | قیدخانه | ډیره غوره ده | ماته | دهغي کارنه | چي دوئ رابلي ما

عزته به شی | هغه اوونیل چي اني زما پروردګاره | جیل مي د هغي کار نه زیات خوښ دي | کوم ته چي

اِلَيْهِ ۚ وَاِلَّا تَصْرِفْ عَنِّيْ كَيْدَهُنَّ اَصْبُ اِلَيْهِنَّ وَاَكُنْ مِّنَ الْجٰهِلِيْنَ۝

هغي ته | او که اونه ګرځول تا | زمانه | مکرونه ددوئ | نوزۀ به مانله شم | دوئ ته | او شم به زۀ | د جاهلانو نه

دوی ما راغواړي | او که تا زما نه د دوئ فریبونه لرې نه کړل | نو زۀ به دوئ ته مانله شم | او به نا پوهه خلقو

فَاسْتَجَابَ لَهٗ رَبُّهٗ فَصَرَفَ عَنْهُ كَيْدَهُنَّ ۭ اِنَّهٗ

نو قبوله کړه دعا | د هغه | رب دهغه | نووې ګرځول | دهغه نه | مکرونه دهغوئ | بیشکه هغه

کښې به شمیر شم | نو دهغه پروردګار دهغه دعا قبوله کړه | او دهغوئ د مکراو فریب نه ئي بچ کړو هغه

هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ۝

خاص هم هغه | اوریدونکي دي | په هر څه پوهه دي |

ذات دهر چا اوریدونکي | او په هرڅه پوهه دي |

**قوله تعالی:: مَا هٰذَا بَشَرًا ؕ**

**د یوسف** ﷺ **حسن:-** دمحبت د دې قصې خبر په ښارکښې خورشو اومشهورشو. یوڅو شریفانوښځو دا قصه په ډیره حیرانتیا او سپکاوی سره سردوباره کړه چه ګوره د وزیر ښځه ده اوپه یوغلام باندې خان ورکوی اود هغه مینه ئی په خپل زړه کښې کلکه کړې ده. شغف وائی دحدنه زیات شوې قاتل محبت ته او شعف ددې نه دکمې درجې وی او شغاف وائی د زړه پردو ته. وائی چه د عزیز ښځه په کولاؤ غلطئی کښې پریوتې ده.ددې غیبتونو پته دعزیز ښځې ته اولګیده.دلته لفظ مکرځکه اوونیلې شو چه دبعضودوینامطابق دښځوپه حقیقت کښې پخپله یوښکاره مکروودهغوی خوصرف دحسن یوسف ﷺ د دیدار خواهش وو اودا ئی صرف یوه بهانه جوړه کړې وه. د عزیز ښځه هم د هغوی په چال باندې پوهه شوه اوبیا هغې په دې کښې د خپل غرور مصلحت هم اولیدلو نو هم هغه وخت ئی هغوی ته دعوت ورکړو چه فلانکی وخت باندې ستاسو زما کره دعوت دې.اویومجلس یومحفل اویوبیتك ئی برابر کړو چرته چه میوې دانې پرتې وې هغې د پریکولو او سپینولو د پاره اود خوړلو د پاره یویو تیره چاقو ټولو ته لاس کښې ورکړو. دا د هغه ښځو د دوکې جواب هغوی اعتراض صرف د یوسف ﷺ د لیدلودپاره غوښتلو. هغوی خپل خان مغروره ښکاره کولواود هغوی مکر ښکاره کولو د پاره هغوی پخپله خپل لاسونه زخمی کړل. هغې حضرت یوسف ﷺ ته اوونیل چه ته راشه نو هغه د خپلې مالکې د حکم نه څنګه انکار کولې شو؟ هغه وخت چه په کومه کمره کښې وې هلته راغلو د ښځو نظر چه کله د هغه په مخ باندې پریوتلو نو ټولې هیبت واخستې او په هیبت جلال رعب اوحسن سره بې خوده شوې او په ځائ د دې چه په دې تیرو چاقوګانو میوې پریکړی دهغوی لاسونه پریکړې شو. حضرت زید بن اسلم ﷺ وائی چه میلمستیا اول باقاعده شوې وه اواوس خوصرف میوې اوتواضع کیدله میوې په لاسونو کښې وې او چاقوګان چلیدل هغې ونیل چه یوسف ﷺ کتل غواړئی؟ ټولو په یو آواز سره اوونیل چه اوخامخا. هم هغه وخت ئی حضرت یوسف ﷺ راوغوښتو چه راشه هغه راغلو بیا زلیخا ونیل چه زه هغه لاړو، په تلوراتلوکښې وراندې روستودې ښځو پوره شان حضرت یوسف ﷺ اولیدلو په کتلو سره په ټولو خاموشی خوره شوه. بې هوشه شوې په ترنجانو پریکولو ئی خپل لاسونه پرې کړل. په

دې باندې د عزیز ښځې اوونیل چه اوموکتل په یوخل کتوسره تاسو داسې بې خوده شوې اوس ماته اوښانې زما به څه حال وی؟ ښځو ونیل چه والله دا خو انسان نه دې فرښته ده او فرښته هم د لوی مرتبې والا. د نن نه پس به مونږ تا چرې هم ملامته نه کړو. دې ښځو خود حضرت یوسف په شان څه ده سره نیزدې اود ده په رنګ ښانسته سړې چرته هم نه وو لیدلې.

**یوسف ته نیم حسن ورکړې شوې وو:** یوسف ته الله نیم حسن ورکړې وو د معراج په حدیث کښې دی په دریم آسمان کښې د رسول الله ملاقات حضرت یوسف سره اوشو چاته چه نیم حسن ورکړې شوې وو(۱)اوپه یو روایت کښې دی چه حضرت یوسف ته اود هغه مور ته الله د خپل قدرت د فیاضونه نیم حسن ورکړې وو. او په یوروایت کښې دی چه دریمه حصه حسن حضرت یوسف ته اود هغه مور ته ورکړې شوې وو.دهغه مخ دبجلئی د پرق په شان روښانه وو. کله به چه یوه ښځه یوسف ته د څه کار د پاره راتله نو هغه به خپل مخ پټ کړو نو هغې سره به نی خبرې کولې چه چرته هغه په فتنه کښې پرینوزی. اوپه یو روایت کښې دی چه حسن درې حصې کړې شونې دې دوه حصې په ټولو خلقو کښې تقسیم شوی دی اویوه حصه صرف یوسف اود هغه مورته ورکړې شوې دې. دې مور اوخوی ته په دریوکښې دوه حصې اوباقی ټولې دنیاته یوه حصه حسن ورکړې شوې دې(۲) په سهیلی کښې دی چه یوسف ته د حضرت آدم نیم حسن ورکړې شوې دې. الله حضرت آدم په خپل لاس سره په کمال حسن سره یوه نمونه جوړه کړې وه او ډیر ښکلې نی پیداکړې وو. د هغه په اولادکښې دیوسف په وزن باندې څوک هم نه وو.اوحضرت یوسف ته د هغه نیم حسن ورکړې شوې وو.نودې ښځوهغه ته په کتوسره اوونیل نعوذبالله داخو انسان نه دې.د(بَشَرًا) دویم قراءت (بِشِرٍ)دې یعنی دا خو په اخستې شوکښې کیدې نه شی. دا خو چرته یوعزت داره فرښته ده. اوس د عزیز ښځې ونیل چه اوس اوښانې تاسو خو به ما د عذر والا ګنړنی؟ د ده حسن او جمال داسې نه دې چه صبر او هوش هرڅه وانخلی. ما دې په هرقسم طریقه باندې خپل ځان ته مائل کول اوغوښتل خودې زما په قبضه کښې رانغلو. اوس پوهه شنی چه یوطرف ته په ده کښې دا ظاهری بهتری او خوبی ده نو بل طرف ته د ده عظمت او عفت باطنی خوبی هم بې مثاله ده. بیا نی دهمکی ورکړه که ده زما خبره اونه منله نودې به قید کړې شی اوزه به دده ډیره بې عزتی اوکړم.

**یوسف دخپل عفت دعا د الله نه غواړی:** په دغه وخت کښې حضرت یوسف د دې چل نه د الله پناه اوغوښتله اودعا نی اوکړه چه یا الله زما جیل ته تلل خوښ دی خوته ما د دې د خرابو ارادونه محفوظ کړه. داسې نه وی چه زه چرته په بدنی کښې اخته نه شم. یا الله که تا زه بچ کړم نو بچ به شم ګنی په ماکښې دومره قوت نشته اوماته د خپلې نفع اونقصان څه اختیار نشته. ستا د رحم او ستا د کرم نه بغیر نه زه د څه ګناه نه بچ کیدې شم اونه یوه نیکی کولې شم. یاالله زه تانه امداد غواړم او هم په تاباندې یقین ساتم. ته ما د خپل نفس په حواله مه کړه چه زه د دې ښځو طرف ته ټیټ شم او د جاهلانونه شم. نو الله کریم او قادر د هغه دعا قبوله کړه. هغه نی بالکل بچ کړو عصمت اوعفت نی ورعطا کړو پخپل حفاظت کښې نی اوساتلو اودبدنی نه نی حضرت یوسف بچ اوساتلوسره ددومره خوانئی. حسن او خوبو او د هرقسم کمال چه په هغه کښې وو هغه د خپل خواهش د بې خایه پوره کولو نه منع شو اود دې ښځې طرف ته نی رخ هم اونه کړو. د رئیس لور ده د رئیس ښځه ده د هغه مالکه ده اوبیا ډیره ښانسته هم ده د حسن سره مال هم دې حکومت هم دې او په خپله خبره منلوباندې انعام او

---

۱) صحیح مسلم کتاب الایمان باب الاسراء برسول الله الی السموات وفرض الصلوات:۱۶۲.
۲) حاکم:۵۷۱/۲.

اکرام هم دې اود نه منلوپه صورت کښې د جیل او سختې سزا حکم اوروی. خود هغه په لاس کښې د الله ﷻ د ویرې سمندر په چپو دې یوسف ﷺ خپل دا دنیاوی آرام اودا عیش او خوند د الله ﷻ په نوم باندې قربانی کوی اوقید ته په دې باندې ترجیح ورکوی چه د الله ﷻ د عذابونونه بچ شی اوپه آخرت کښې د ثواب مستحق جوړشی.

**ووه قسمه کامیابه خلق:** په بخاری اومسلم کښې دی رسول الله ﷺ فرمانی چه اووه قسمه خلق دې چاته چه به الله ﷻ دخپل سوری لاندې خانې ورکوی په کومه ورځ چه به هیڅ سورې نه وی نه دهغه دسوری نه علاوه. (۱) مسلمان عادل بادشاه (۲) خوان سړې اوښخه چا چه خپله خوانی د الله ﷻ په عبادت کښې تیره کړې وی (۳) هغه سړې د چا زړه چه په جمات کښې زوړند وی کله د جمات نه اوځی د جمات په خیال کښې وی تردې چه بیا هلته لاړ شی. (۴) هغه سړې چه خپل مینځ کښې صرف د الله ﷻ د پاره مینه کوی او هم په دې باندې راجمع کیږی او هم په دې باندې جداکیږی.(۵) هغه سړې چه صدقه ورکوی خو داسې پټه چه د ښی لاس د خرچ کس لاس ته پته نه وی(۶) هغه سړې کوم چه د شان اوشوکت حسن او جمال ښځه خپل خان طرف ته راغواړی او هغه اووانی چه زه د الله ﷻ نه ویریږم(۷) هغه سړې کوم چه په خان له خائ کښې الله ﷻ یادوی اوبیا دهغه دواړه سترګې اوبهیږی.([1])

| ثُمَّ | بَدَا | لَهُمْ | مِّنْۢ بَعْدِ مَا | رَاَوُا الْاٰيٰتِ | لَيَسْجُنُنَّهٗ |
|---|---|---|---|---|---|
| بیا | ښکاره شوه | هغوئ ته | اروستو د هغې نه | چې اولیدلې هغوئ علامې | اچې خامخاپه قید کښې واچوی هغه |
| بیا هغوئ ته د ښکاره ثبوت لیدلو نه پس هم دا مصلحت ښکاره شو \| چې ترڅو مودې پورې دې | | | | | |
| حَتّٰى حِيْنٍ ﴿۳۵﴾ | | | | | |
| دځه وخته پورې | | | | | |
| (یوسف ﷺ) په قید کښې واچوی...................... | | | | | |

**قوله تعالی:: ثُمَّ بَدَا لَهُمْ**

**د حضرت یوسف پاکدامنی:-** د حضرت یوسف ﷺ د پاکدامنۍ راز په ټولو ښکاره شوخو بیا هم دې ټولو مصلحت په دې کښې اوګڼرلو چه څه مودې پورې به حضرت یوسف ﷺ په جیل کښې اوساتو. ممکن دی چه دې ټولو په دې کښې دا مصلحت ګڼرلې وی چه په خلقو کښې خبره خوره شوې ده چه د عزیز دښځې یوسف ﷺ خوښ دې چه کله مونږ یوسف ﷺ قید کړو نو خلق به پوهه شی چه قصور هم د ده دې.هغوی به څه داسې خیال کړې وی.هم داوجه وه چه کله دمصربادشاه هغه دقیدخانې نه راویستلو اوخپل خان ته نې راوغوښتلو نو یوسف ﷺ هم دهغه خائ نه اوفرمائیل چه زه به نه دراوځم تر څوپورې چه زما ددې خبرې نه خلاصې او پاکدامنی په صفا توګه ښکاره شوې نه وی او تاسو مشران د دې پوره تحقیق اونه کړنې. ترکومې چه بادشاه د هرقسم ګواه او شاهدانونه بلکه پخپله د عزیز د ښځې نه تحقیق اونه کړواو دهغه بې قصوره کیدل په ټوله دنیاباندې ښکار نه کړې شو هغه د جیل نه بهر اونه وتلو.بیا هغه بهر راغلو اویو زړه هم داسې نه ووپه کوم کښې چه صدیق اکبر،د الله نبی پاک او معصوم رسول الله حضرت یوسف ﷺ باره کښې لړه شان هم بدګمانی وه.دقید کولولویه وجه هم دغه وه چه د عزیز د ښځې رسوانی نه وی.

---

[1])صحیح بخاری کتاب الاذان باب ومن جلس فی المسجد ینتظر الصلوٰة وفضل المساجد:٦٦٠، صحیح مسلم.١٠٣١، احمد ٤٣٩/٢، ابن خزیمه:٣٥٨، ابن حبان:٤٤٨٦.

وَدَخَلَ مَعَهُ السِّجْنَ فَتَيٰنِ ؕ قَالَ اَحَدُهُمَآ اِنِّيْٓ اَرٰىنِيْٓ

اوننوتل |دهغه سره| قیدخانې ته |دوه غلامان|اوونیل|یو دهغوئ دواړونه| بیشکه زهٔ | وینم خان خپل

او جیل ته ورسره نور دوه خلمي (مریان)داخل شو|یوه ورځ) یو اوونیل چې( په خوب کښې )زهٔ ګورم چې

اَعْصِرُ خَمْرًا ۚ وَقَالَ الْاٰخَرُ اِنِّيْٓ اَرٰىنِيْٓ اَحْمِلُ فَوْقَ رَاْسِيْ

چې نچونړوم| شراب|اواوونیل| هغه بل|بیشکه زهٔ|وینم خان خپل| چې بار کړې مې ده|دپاسه| دسر خپل

دانګورو نه شراب نچونړوم | او بل اوونیل چې زهٔ ( په خوب کښې ) څه ګورم چې ډوډئ مې ( په

خُبْزًا تَاْكُلُ الطَّيْرُ مِنْهُ ؕ نَبِّئْنَا بِتَاْوِيْلِهٖ ۚ اِنَّا نَرٰىكَ

ډوډئ | چې خوری | مارغان | دهغې نه |خبر کړه مونږه | په تعبیر ددې |بیشکه مونږه | وینو تالره

طباغ کښې ) په سر ایخودې ده |چې مرغئ ترې ( په ټونګو ټونګو) خو راکونه کوی| مونږ ته ددې

مِنَ الْمُحْسِنِيْنَ ۝

دنیکانو خلقونه|

(خوبونو) تعبیرونه اوښایه | ته مونږ ته ښهٔ سړې ښکارې

**قوله تعالی:: وَدَخَلَ مَعَهُ السِّجْنَ فَتَيٰنِ ؕ**

**د جیل خانې ژوند:**-اتفاقی په کومه ورځ چه حضرت یوسف ﷺ جیل ته لاړو نو یوساقی او نانبانی هم په څه جرم کښې جیل ته لاړل. د ساقی نوم بندار وو اود باورچی نوم محلث وو. په هغوی باندې دا الزام وو چه هغوی بادشاه ته په خوراك څښاك کښې زهرورکولو کوشش کړې وو.په قیدخانه کښې هم د الله ﷻ دنبی یوسف ﷺ پوره مشهورتیا وه.رښتونولی،امانتداری سخاوت ښه اخلاق کثرت عبادت ترس علم اوعمل دخوب تعبیراوداحسان اوسلوك وغیره کښې هغه مشهور شوې وو.په جیل کښې د قیدیانو ښیګړ هغوی سره ښه سلوك هغوی سره نیکی او احسان د هغوی زړه ساتنه د هغوی د بیمارانو خدمت کول او دارو وغیره هم د هغې شغل وو. دې دواړو شاهی نوکرانو به یوسف ﷺ سره ډیره مینه کوله.
**دیوسف ﷺسره دهرچامینه دامتحان سبب جوړ شوې وو**:یو ورځ نی اوونیل حضرت!تاسو سره زمونږ ډیره مینه ده، هغه اوفرمائیل الله ﷻدې تاسو له برکت درکړی. خبره دا ده چه چا هم زه خوښ کړې یم نو څه نه څه مصیبت په ما راغلې دې، د ترور مینه،د پلارمینه اود عزیز د ښځې مینه ټول ماته یاد دی اود دې نتیجه یوازې زمانه بلکه ستاسو په وړاندې هم ده.یوځل دې دواړو خوب اولیدلو ساقی اوکتل چه هغه د انګور شیره نچوړی کوی.د ابن مسعودؓ په قراءت کښې ﴿خمرا﴾ په ځای ﴿عنبًا﴾ دې. اهل عمان انګورو ته خمر وائی. هغه لیدلې وو لکه چه هغه د انګورو زیلنی کرلې وه په هغې کښې غونچې لګیدلې دی هغه راماتې کړې اوبیا نی دهغې شیره نچوړی کوی چه په بادشاه باندې اوڅکوی د دې خوب په لیدو باندې خواهش کولو چه هغوی راته تعبیر اوښائی. د الله ﷻ پیغمبر ﷺ اوفرمائیل چه د دې تعبیردا دې چه ته به دریو ورځوکښې د جیل نه آزادولې شې اوته به په خپل کار کښې اولګی یعنی د بادشاه ساقی به شې. بل وئیل جناب ما په خوب کښې اولیدل چه ما په خپل سر باندې روټئی اوچتې کړی دی اومرغنی راځی اود دې نه خوری. د اکثرو مفسرینو په نیز مشهوره خبره هم دغه ده چه واقعي دې دواړو هم دا خوب لیدلې وو اود هغې صحیح تعبیرنی د یوسف ﷺ نه معلوم کړې ووخود عبدالله بن مسعودؓ نه روایت دې چه په حقیقت کښې خو هغوی څه خوب نه وو لیدلې خود حضرت

یوسف ﷺ د ازمیښت د پاره نې د دروغو خوب بیان کړې او تعبیرنې غوښتې وو.[۱]

قَالَ لَا يَأْتِيكُمَا طَعَامٌ تُرْزَقَانِهِ

| اووئیل یوسف | چې نه راځي تاسو ته | خوراك | چې درکولې شي تاسو ته

اهغه ورته اووئیل چې تاسو ته کوم رزق درکولې شي

إِلَّا نَبَّأْتُكُمَا بِتَأْوِيلِهِ قَبْلَ أَنْ يَأْتِيَكُمَا ط

مګر اخبر به درکړم زۀ تاسو ته | په تعبیر دهغې سره | مخکښې | دراتلو دهغې خوراك نه تاسو ته

هغه به لا تاسو ته نۀ وی راغلې اچې ځه به درته د هغې تعبیر اوښایم ......................................

ذَٰلِكُمَا مِمَّا عَلَّمَنِي رَبِّي ط إِنِّي تَرَكْتُ مِلَّةَ

دا تعبیرستاسو | دهغه علم نه دې | چې ښودلې دې ماته | رب زما | بیشکه ما | پرېښودې دۀ | طریقه

دا په هغې علمونو کښې یو علم دې اچې خپل پروردګار راته خودلې دی | (ماخو لا پخوا) دهغې کسانو

قَوْمٍ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَهُمْ بِالْآخِرَةِ هُمْ كَافِرُونَ ۝

دهغه خلقو | چې هغوئ ایمان نۀ راوړی | په الله | اوهغوئ | د آخرت نه | هم هغوئ | انکار کونکې دی

مذهب پرېخودې دې | چې په الله ﷻ باندې باور نۀ ساتی | .........اوداخرت نه منکر دی

وَاتَّبَعْتُ مِلَّةَ آبَاءِي إِبْرَاهِيمَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ ط مَا كَانَ لَنَا

اوتابعداری کړې ده ما | دطریقې | دپلارنیکه خپل | چې ابراهیم | اواسحاق | اویعقوب دی | نۀ ښائی مونږ له

او زۀ د خپل پلار نیکه ابراهیم ﷺ، او اسحاق ﷺ اویعقوب ﷺ د مذهب تابعداری کوم

أَنْ نُشْرِكَ بِاللَّهِ مِنْ شَيْءٍ ط ذَٰلِكَ مِنْ فَضْلِ اللَّهِ عَلَيْنَا وَعَلَى النَّاسِ

چې شریك کړو | دالله سره | څه څیز | دا د فضل دالله نه دې | په مونږ باندې | اوپه ټولوانسانانوباندې

مونږ سره نۀ ښائی چې دالله ﷻ سره څه څیز شریک کړو | داپه مونږ باندې او په (ټولو) خلقو

وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُونَ ۝

خو لیکن | زیات خلق | شکر نۀ اوباسی |

باندې دالله ﷻ فضل دې | خو اکثر خلق احسان نۀ منی |

قوله تعالی:: مَا كَانَ لَنَا أَنْ نُشْرِكَ بِاللَّهِ مِنْ شَيْءٍ ط

**دحضرت یوسف ﷺ دعوت توحید طرف ته:** حضرت یوسف ﷺ خپلو دواړو قیدی ملګروته تسلی ورکوی چه زه ستاسو دخوب صحیح تعبیرباندې پوهیږم اود دې په خودلو کښې زه هیڅ بخل نه کوم د دې د تعبیر واقع کیدونه اول به زه تاسو ته اوښایم. د حضرت یوسف ﷺ د دې فرمان او وعدې نه په ظاهره دامعلومیده چه حضرت یوسف ﷺ په خان له قید کښې رو د خوراك په وخت کښې به کولاوولې شو او یوبل سره به ملاویدلې شو. په دې وجه هغوی سره ده دا وعده اوکړه. اوممکن ده چه د الله ﷻ د طرف نه لږ لږشان تعبیرخودلو او د دواړو خوبونو تعبیر ورته خودلې شوې وی. د ابن عباس ﷺ نه دا اثر مروی دې سره د دې چه ډیر غریب دې فرمانی ماته دا علم د الله ﷻ د طرف نه راکړې شوې دې وجه دا

[۱] حاکم: ۲/۳٤٦.

د. چه ما د هغه کافرانو مذهب پریخودي دي چه نه الله ﷻ مني اونه اخرت حق کنړي. ما د الله ﷻ د پیغمبرانوعلیهم السلام ربښتوني دین منلي دي اوهم د هغې تابعداري کوم. پخپله زما پلار نیکه د الله ﷻ رسولان وو. ابراهیم اسحاق یعقوب علیهم السلام څوک چه یوهم په نیغه لار او استقامت سره روان شو او هدایت منونکي شو. د الله ﷻ د رسولانو اتباع لازم اونیسی د ګمراهود لارو نه مخ واړونی نو الله ﷻ دهغه زړه د نور طرف ته اود هغه سینه معموره کوی او هغه د علم اوعرفان د دولت نه ډکه وی هغه په نبیکړه کښې دخلقوپیشواجوړیږي.اوهغه دنیادنیکنی طرف ته راغواړي.هرکله چه نیغه لار اوخودلې شوه د توحید پوهه ورکړې شوه د شرك بدي ورته اوخودلې شوه نو بیا مونږ ته داخبره چرته ښه لګی چه مونږ الله ﷻ سره بل څوك هم شریك کړو. د الله ﷻ زبردست نعمت دې چه الله ﷻ په هغوی باندې رسولان رالیګلو سره انعام اوکړو. ناقدری کوی او غوښتلو سره ورکړه نه کوی بلکه د رب د نعمت په بدله کښې کفر کوی او پخپله سره د ملګرو د هلاکت په ځایٔ کښې خپل کور جوړوی.

**نیکه هم په درجه دپلار کښې وی** ::حضرت ابن عباس ﷺ نیکه هم د پلار په حکم کښې اخلی او فرمانی چه څوك غواړی زه په حطیم کښې د هغه سره مباهله کولو ته تیاریم. الله ﷻ د نیکه ذکر نه دې کړې ګوره دیوسف ﷺ باره کښې اوفرمائیل مادخپل پلارابراهیم ﷺداسحاق ﷺاوحضرت یعقوب ﷺ د دین پیروی کړې ده.

| | | |
|---|---|---|
| ءَاَرْبَابٌ | يٰصَاحِبَيِ السِّجْنِ | |
| ایا ډیر خدایان | ائي دواړو ملګرو زما دقید | |
| | ائي زما د قید خانې ملګرو (تاسو په خپله اووائی چې) | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ دُوْنِهٖٓ | مَا تَعْبُدُوْنَ | الْقَهَّارُ | اَمِ اللّٰهُ الْوَاحِدُ | خَيْرٌ | مُّتَفَرِّقُوْنَ | |
| ماسوا دالله نه | نه کوئ تاسو عبادت | اچې غالب دې په ټولو | یا الله \| یو | بهتر دی | جدا جدا | |
| تاسو چې د الله ﷻ نه سوا د نورو کومو بتانو | | اکه یواځې یو غالب الله ﷻ | | | جدا جدا معبودان ښهٔ دی | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| بِهَا | مَّآ اَنْزَلَ اللّٰهُ | وَاٰبَآؤُكُمْ | اَنْتُمْ | سَمَّيْتُمُوْهَآ | اَسْمَآءً | اِلَّآ | |
| په(عبادت) دهغوئ | انه دې نازل کړې\| الله | اوپلارانوستاسو | تاسو | چې اېښی دی هغه | خونوموئو | مګرادیو | |
| الله ﷻ دهغې هیڅ | | دخان نه ایخودی دی | اچې تاسواو ستاسو پلرونو | نو هغه صرف نومونه دی | | عبادت کوئ | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَلَّا تَعْبُدُوْٓا | اَمَرَ | اِلَّا لِلّٰهِ | اِنِ الْحُكْمُ | مِنْ سُلْطٰنٍ | |
| چې مهٔ کوئ عبادت تاسو دهیچا | هغه حکم کړې دې | مګر \| الله لره دې | نشته اختیار دحکم کولو | خه دلیل | |
| اچې بې دهغه نه | هغه دا حکم کړې دې | حکومت خو بس صرف دالله حق دې | | دلیل سند نهٔ دې رالیږلې | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَا يَعْلَمُوْنَ | اَكْثَرَ النَّاسِ | وَلٰكِنَّ | الْقَيِّمُ | ذٰلِكَ الدِّيْنُ | اِيَّاهُ | اِلَّآ | |
| نهٔ پوهیږی | زیات خلق | اخولیکن | نیغ (برحق) | دادې \| دین | خاص هم دهغه | مګر | |
| خو زیات خلق نهٔ پوهیږی | | هم دغه سم پوخ دین دې | | د بل هیڅ چا عبادت مهٔ کوئ | | | |

**قوله تعالٰی:: اَمَرَ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّآ اِيَّاهُ**

**حضرت یوسف ﷺاو دعوت توحید**:-د یوسف ﷺ ته هغوی د خپل خوب د تعبیرد پاره راغله هغه دوی ته دخوب د تعبیر ورکولو اقرار اوکړو.خود دې نه وړاندې هغوی ته د توحید وعظ کوی، د شرك نه اود مخلوق پرستنې نه د هغوی نفرت راپیداکوی. فرمانی چه هغه الله واحدچه په هرڅیز باندې

قدرت لرى د چا په وړاندې چه ټول مخلوقات ښکته عاجز او بې وسه او بې طاقته دى اود كوم چه دويم شريك او د هغه په شان بل څوك نشته دچا عظمت او سلطنت چه په هرځاني او هره ذره باندې دې هغه يو بهتر دې كه ستاسو دا خيالي كمزوري اوناكاره ډيرمعبودان بهتردى؟ بيافرماني چه تاسو د كومو كومو عبادت كوئې هغه ټول بې فائدې دى بې نامې دى اود هغوى د پاره عبادت كول دا ستاسو دخپل خان نه جوړ كړى دى.د زيات نه زيات تاسو دا ونيلې شئ چه ستاسو پلار نيكه هم د دې مرض مريضان وو خود دې تاسو څه دليل راوړې نه شئ. د دې څه عقلي يا نقلي دليل په دنياكښې الله ﷻ هډو جوړكړې نه دې. د تصرف حكم او د هرڅيز قبضه هم د الله ﷻ ده. هغه خپلو بنديگانوته د خپل عبادت نه بغير د بل چا دعبادت كولونه قطعي او حتمي حكم وركړې دې. دين مستقيم هم دغه دې د الله ﷻ توحيد وى اوهم دهغه دپاره عمل او عبادت وى هم د دغه الله ﷻ حكم دې.په دې باندې بې شميره دليلونه موجود دى خو اكثر خلق د دې خبرو نه جاهلان دى كم عقل دى، د توحيد اوشرك فرق نه پيژنې. په دې وجه اكثرخلق د شرك په ترمه كښې ورخښيږى.سره دانبياء كرامو د غوښتنې دوى ته ايمان نه نصيب كيږى.

**د تعبير خودلو نه وړاندې د توحيد بيانولو اصل مقصد::**دخوب دتعبير نه وړاندې ددې بحث دچيړلو يو خاص مصلحت داهم ووچه په دوى كښې د يود پاره تعبيرډير خراب وو نو يوسف ﷺ اوغوښتل چه دې تپوس اونه كړى نو بهتربه وى. خود دې تكليف څه ضرورت دې خاص كر په داسې موقعه باندې چه د الله ﷻ پيغمبرهغوى سره د تعبير وركولو وعده كړې ده.دلته خوصرف داخبره ده چه هغوى د يوسف ﷺ بزرګى او عزت كتلو سره د هغوى نه د يوې خبرې تپوس اوكړو هغه د دې نه د ډيرې بهتر خبرې طرف ته د هغوىتوجو راواړوله اود اسلام دين ئې د هغوى په وړاندې سره د دليلونو وړاندې كړو څكه چه يوسف ﷺ كتلې وو چه په دوى كښې د ښيګړې قبلولو ماده شته. په خبره به سوچ كوى په دليل به غور كوى، حق به د قبوليت په غوږونو اورى. كله چه هغوى خپل فرض اداكړل د الله ﷻ د احكامو تبليغ ئې اوكړو نو اوس چه هغوى بغيرد دې نه دوباره تپوس كوى نو هغوى جواب شروع كړو.

| يٰصَاحِبَيِ | السِّجْنِ | اَمَّآ | اَحَدُكُمَا | فَيَسْقِيْ | رَبَّهٗ | خَمْرًا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اې ملګرو زما \| | دجيل | اهر چې دې \| | يو په تاسو دواړو كښې \| | نو څښوى به \| | په رب خپل \| | شراب |

انې زما د قيد خانې ملګرو(ستاسو دخوبونو تعبير دادې چې)په تاسو كښې به يو كس ,په كار اولګى او, خپل مالك

| وَاَمَّا | الْاٰخَرُ | فَيُصْلَبُ | فَتَاْكُلُ | الطَّيْرُ | مِنْ رَّاْسِهٖ | قُضِيَ | الْاَمْرُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اوهر چې دې\| | دا بل \| | نو په سولۍ به كړې شى\| | نوخورى به\| | مارغان\| | دسرد هغه نه \| | شوې ده \| | فيصله |

باندې به شرابونه څښوى\|اوبل چې دې نو هغه به پانسى شى \|اومرغۍ به ئې دسر نه غوښې ( په ټونګو ټونګو)

| الَّذِيْ | فِيْهِ | تَسْتَفْتِيٰنِ |
|---|---|---|
| هغه \| | چې په هغې كښې | اتپوس كولو تاسو زمانه\|\| |

خورى\| دكوم خوب په باره كښې چې تاسو زما نه پوښتنه كوله د هغې جواب اوشو\|

**قوله تعالى:: اَمَّآ اَحَدُكُمَا فَيَسْقِيْ رَبَّهٗ خَمْرًا**

**د قيديانود خوب تعبير**.-اوس د الله ﷻ برګزيده پيغمبر دپيغمبر خوئ د هغوى د خوب تعبير ښانى خودا نه فرمانى چه ستا دخوب دا تعبير دې اوستا دخوب دا.دې دپاره چه يوخفه نه شى اودمرګ د ويرې د مرګ نه وړاندې په هغه د مرګ بوج پرينوخى. بلكه مبهم كولوسره فرمانى چه په تاسو دواړو

کښې به یو د بادشاه ساقي جوړشي، په اصل کښې دا د هغه د خوب تعبیر دې چا چه د انګورو د شیرې نچوړې کول لیدلي وو. او بل چه په خپل سرئی روټئی لیدلې وې د هغه د خوب تعبیرئی دا ورکړو چه دې به په سولئ‌کولې شی. او مرغئی به د ده مازغه خوری بیا ئی دا اوفرمائیل چه اوس به داکیږی. په دې وجه چه ترکومې پورې د خوب تعبیر بیان نه کړې شی دا زوړند وی او چه کله تعبیر اوشی هغه ښکاره شی. وائی چه د تعبیراوریدو نه پس دې دواړو اووئیل چه مونږ خو په حقیقت کښې څه خوب لیدلې نه دې. هغوی اوفرمائیل چه اوس خو به ستاسو د سوال مطابق هم هغه شان کیږی. (١)

**هسې د دروغو خوب جوړول ندی پکار:**: د دې نه معلومیږی چه څوك هسې یوخوب د خان نه جوړکړی اوبیا د هغې تعبیر هم ورکړې شی نوهغه لازم کیږی. والله اعلم. په مسند احمد کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائی خوب لکه چه د مرغئی په پښوباندې دې ترکومې چه د دې تعبیر ورنه کړې شی. خو چه کله تعبیر ورکړې شو نو دا به خامخا کیږی. په مسند ابویعلی کښې مرفوعًا روایت دې چه د خوب تعبیر د ټولونه اول چا ورکړو هم د هغه د پاره دی.

| وَقَالَ لِلَّذِیْ ظَنَّ |
|---|
| اووې وئیل \| هغه کس ته \| چې خیال وو دهغه |
| \| او په دواړو کښې چې ئې د |
| اَنَّهٗ نَاجٍ مِّنْهُمَا اذْكُرْنِیْ عِنْدَ رَبِّكَ فَاَنْسٰهُ |
| چې بیشکه هغه\|خلاصیدونکې دې\|ددې دواړونه\|چې یادکړه ما\|په نیز د مالك خپل\|نوهیرکړل دهغه نه |
| چا د خلاصی ګمان کولو\| هغه ته ئې اووئیل \|چې خپل مالک ته زما ذکر اوکړه\| خو شیطان د هغه نه |
| الشَّیْطٰنُ ذِكْرَ رَبِّهٖ فَلَبِثَ فِی السِّجْنِ بِضْعَ سِنِیْنَ ۝ |
| شیطان \| یادول خپل مالک ته \| نو وخت تیر کړو(یوسف)\|په جیلخانه کښې \| یوڅوکلو نه |
| دخپل مالک په مخکښې یادول هیر کړل \| نو(یوسف ؑ) څوکاله په جیل کښې پاتې شو |

**قوله تعالی:: فَلَبِثَ فِی السِّجْنِ بِضْعَ سِنِیْنَ ۝**

د قید موده څومره وه؟ کوم چه حضرت یوسف ؑ د هغه دخوب د تعبیر مطابق په خپل خیال کښې د جیل نه آزادیدونکې ګنړلې وو د هغه نه په پټه چه باورچی واونه ری وئی فرمائیل چه بادشاه سره زما لږ شان ذکر هم اوکړه خوهغه نه دا خبره بالکل هیره شوه. دا هم یو شیطانی چال وو چه چا سره د الله ﷻ نبی څوکاله پورې په جیل کښې وی. نو صحیح قول هم دغه دې (فانساه)کښې د "ه" ضمیر خلاصې بیاموندونکی سړی ته راجع دې.(٢)اودا هم وئیلی شوی دی چه دا ضمیر هم د حضرت یوسف ؑ طرف ته راجع دې. د ابن عباس ؓ نه مرفوعًا روایت دې چه د الله ﷻ نبی ﷺ فرمائیلی که یوسف دا کلمه نه وئیله نوپه جیل کښې به نی دومره اوږده موده نه تیروله.هغه دالله ﷻ نه بغیردبل چانه آزادی غوښتله. (٣) دا روایت ډیر ضعیف دې خکه چه سفیان ابن وکیع او ابراهیم بن یزید دواړه راویان ضعیف دی.د حسن او قتاده ؒ نه مرسلاً روایت دې سره د دې چه مرسل حدیثونه په یوموقعه باندې قبول هم وی خو په داسې اهم مقاماتوکښې داسې مرسل روایتونه هیڅ کله د احتجاج قابل کیدې نه شی. والله

١) الطبری: ١٠٨/١٦.
٢) الطبرانی١١٥/١٦.
٣) طبرانی: ١١٦٤٠.

اعلم.(بضع) د "لا" لفظ د دريو نه ترنهو پورې راځي. د حضرت وهب بن منبه بيان دې چه حضرت ايوب ﷺ په بيمارئ کښې تراووه کالوپورې اخته وو او حضرت يوسف ﷺ په جيل کښې تر اووه کالو پورې وو او بخت نصر عذاب هم تر اووه کالوپورې وو. (١) ابن عباس رضي الله عنه وائي چه د قيد موده دولس کاله وه ضحاك رحمه الله وائي څوارلس کاله يوسف ﷺ په قيدخانه کښې تيرې کړې.

وَقَالَ الْمَلِكُ اِنِّيْٓ اَرٰى سَبْعَ بَقَرٰتٍ سِمَانٍ يَّاْكُلُهُنَّ سَبْعٌ

او اووئيل بادشاه| بيشکه ما| اوليدلې| اووه |غواګانې| څربې |چې خورې دې اووه غواګانو لره| اووه

او (يوه ورځ) بادشاه اووئيل چې زه (په خوب کښې) وينم چې اووه څريدونکې غواګانې دي اچې نورې اووه تېې

عِجَافٌ وَّسَبْعَ سُنۢبُلٰتٍ خُضْرٍ وَّاُخَرَ يٰبِسٰتٍ ؕ يٰٓاَيُّهَا الْمَلَاُ اَفْتُوْنِيْ

تېې |او اووه | وږی | شنه |او نور | وچ | ائې درباريانو | تعبير راکړئ ماله

غواګانې ئې خورې |او (دغلې) اووه شنه وږ ی دی | اونور (اووه) اوچ (وږی دی) | ائې

فِيْ رُءْيَايَ اِنْ كُنْتُمْ لِلرُّءْيَا تَعْبُرُوْنَ ۝ قَالُوْٓا اَضْغَاثُ

په دې خوب زما کښې | که يئ تاسو | دخوبونو دپاره | تعبير کونکی | اووئيل هغوئ | (دا) پريشانه

درباريانو ماته ددې خوب تعبير اوښايئ اکه تاسو دخوبونو تعبيرونه ايستې شئ اهغوئ ورته اووئيل چې دا

اَحْلَامٍ ۚ وَمَا نَحْنُ بِتَاْوِيْلِ الْاَحْلَامِ بِعٰلِمِيْنَ ۝ وَقَالَ الَّذِيْ نَجَا

خوبونه دی| اونۀ يومونږ |په تعبيرونو| دپريشانه خوبونو| پوهيدونکی | او اووئيل | هغه کس| چې بچ شوې وۀ

پريشانه خوب دې|اومونږ دداسې خوبونو په تعبيرونو نۀ پوهيږو|اوپه (دواړو قيديانو) کښې څوک چې راخلاص

مِنْهُمَا وَادَّكَرَ بَعْدَ اُمَّةٍ اَنَا اُنَبِّئُكُمْ بِتَاْوِيْلِهٖ

دهغې دواړونه|او ياد راغئ هغه ته|روستو دډيرې مودې نه| زۀ |خبردرکوم تاسوته|په تعبير ددې خوب

شوې وو|هغه اووئيل او ډيره موده پس ورته ورياد شواچې څه درته په يو ساعت کښې تعبير راوړم

فَاَرْسِلُوْنِ ۝ يُوْسُفُ اَيُّهَا الصِّدِّيْقُ اَفْتِنَا فِيْ سَبْعِ بَقَرٰتٍ سِمَانٍ

پس اوليږئ ما| ائې يوسف| ائې رښتينيه |خبرراکړه مونږته| په اووه غواګانو کښې| چې څربې دی

ماته لږ شان اجازت راکړئ |ائې يوسف ! ائې رېښتونيه مونږ ته د يو خوب تعبير اوښايه | چې اووۀ

يَّاْكُلُهُنَّ سَبْعٌ عِجَافٌ وَّسَبْعِ سُنۢبُلٰتٍ خُضْرٍ وَّاُخَرَ يٰبِسٰتٍ ۙ لَّعَلِّيْٓ

چې خورې هغوئ لره| اووه تېې غواګانې| او اووه | وږی | شنه |او نور | وچ | شايد چې زۀ

څربې غواګانې دی|او نورې اووۀ تېې غواګانې ئې (لګيادې) خورې| او اووۀ شنه وږی دی | او (ورسره)

اَرْجِعُ اِلَى النَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَعْلَمُوْنَ ۝ قَالَ تَزْرَعُوْنَ

واپس لاړشم | خلقو ته | شايد چې هغوئ | پوهه شي | اووئيل يوسف | کرونده به کوئ تاسو

نور (اووۀ) اوچ وږی دی|چې زۀ خلقو ته واپس ورشم |شايدچې هغوئ هم پوهه شي| حضرت يوسف ﷺ ورته

(١) الطبرى: ١١٤/١٦.

سَبۡعَ سِنِيۡنَ دَاَبًا فَمَا حَصَدۡتُّمۡ فَذَرُوۡهُ فِيۡ سُنۡۢبُلِهٖۤ اِلَّا
اووه | کاله | پرله پسې انو هغه فصل | چې اوربئ تاسو انو پرېږدئ هغه | په وږوخپلو کښې | ماسوا
اووئیل | چې تاسو به اووهٔ کاله پرله پسې زمکه کرئ انوچې کوم فصلونه | وربیئ انو هغه په وږو کښې پرېږدئ | خو
قَلِيۡلًا مِّمَّا تَاۡكُلُوۡنَ۝ ثُمَّ يَاۡتِيۡ مِنۡۢ بَعۡدِ ذٰلِكَ سَبۡعٌ شِدَادٌ
د لږو | هغونه | چې تاسو ئې خورئ | بیا به راشي | روستو | د دې نه | اووه کاله | سخت
لږ مقدار چې کوم تاسو خورئ هغه پرېږدئ بیا به ورپسې اووهٔ (د سوکړې) سخت کالونه راشي | چې
يَّاۡكُلۡنَ مَا قَدَّمۡتُمۡ لَهُنَّ اِلَّا قَلِيۡلًا
چې اوبه خوري دا اووهٔ کالونه | هغه غله | چې وړاندې نه (جمع کړې) ایښې وی تاسو | دپاره د دغه کلونو | ما سوا | د لږ
هغه څه به اوخوري | کوم چې تاسو دپخوا نه جمع کړې وی | مګر لږ
مِّمَّا تُحۡصِنُوۡنَ۝ ثُمَّ يَاۡتِيۡ مِنۡۢ بَعۡدِ ذٰلِكَ عَامٌ فِيۡهِ
دغونه | چې تاسو ئې محفوظ ساتئ | بیا به راشي | روستو دهغې نه | یو کال | چې په هغې کښې به
مقدار چې تاسو (تخمونو دپاره) ساتلې وی | بیا به ورپسې داسې کال راشي چې په خلقو به ډېر
يُغَاثُ النَّاسُ وَفِيۡهِ يَعۡصِرُوۡنَ۝
فریاد اوریدې شی دخلقو | او په هغې کښې به | نچوړوی خلق | ۔
بارانونه اووریږی او هغوی به (د انګورونه) شیرې نچونړوی

قوله تعالی:: وَقَالَ الۡمَلِكُ اِنِّيۡۤ اَرٰى سَبۡعَ بَقَرٰتٍ سِمَانٍ

**د بادشاه د خوب تعبیر:**-د الله ﷻ قدرت سره دا مقررکړې وو چه حضرت یوسف؈ به د جیل نه په عزت اواکرام پاکوالی براءت اوعصمت سره راوخی. دهغه دپاره قدرت دا سبب جوړکړوچه د مصر بادشاه یو خوب اولیدلو په کوم سره چه هغه باندې زلزله شان راغله. دربار نې اولګولو او ټول امراء رئیسان کاهنان منجم علماء اود خوب تعبیر بیانونکی ټول نې راجمع کړل او خپل خوب نې بیان کړو اود هغې تعبیرنې اوغوښتلو خود چا په ذهن کښې هیڅ رانغله او ټول بې وسه شو اودا نې اوونیل چه څه خاص رښتونی خوب نه دې چه ددې تعبیراوشی.داخوهسې د خفګان خوب ګډووډو خیالاتو او د فضول توهماتو خاکه ده د دې تعبیر مونږ نه پیژنو.

**په دغه وخت قیدی ته یوسف؈ وریاد شو::**دغه وخت کښې شاهی ساقی ته حضرت یوسف؈ رایادشوچه هغه دخوب دتعبیر پوره ماهر دې اوپدې علم کښې هغه ته پوره مهارت حاصل دې. دا هغه سړې دې چه حضرت یوسف؈ سره په جیل کښې وو دې هم اود ده یو بل ملګرې هم. هم ده ته حضرت یوسف؈ وئیلې وو چه بادشاه سره زما ذکر هم اوکړه خودهغه نه شیطان هیرکړل. نن د ډیرې مودې نه پس هغه ته رایاد شو اوهغه د ټولوپه وړاندې اوونیل چه که ستاسو د دې د تعبیر د اوریدلو شوق وی او هغه هم صحیح تعبیر نو ماته اجازت راکړئ چه یوسف صدیق؈ چه په قید کښې دې هغه له لاړشم او د هغه نه معلومات اوکړم. ټولو دا منظورکړه اوهغه نې د الله ﷻ نبی یوسف؈ له اولیګلو. ﴿اُمَّة﴾ دویم قراءت ﴿اَمَهٍ﴾ هم دې د دې معنی د هیرې ده یعنی د هیریدلو نه پس د حضرت یوسف؈ فرمان وریاد شو. درباریانونه نې اجازت واخستلو اوجیل ته لاړو اود الله ﷻ نبی ابن نبی ابن نبی ابن نبی علیهم السلام ته نې اوونیل چه اې رښتونی نبی یوسف؈ بادشاه داسې یو خوب لیدلې دې دهغه د تعبیر شوق دې ټول دربار ډک دې. د ټولو سترګې لګیدلی دی تاسو ماته تعبیر اوښائې نو زه به لاړشم

او هغوی ته به نی واوروم اوبولو ته به معلومه شي. يوسفؑ خو نه هغه ملامته کړوچه تا زه تراوسه پورې هیر کړې ووم سره د دې چه تا زما بادشاه ته ترننه پورې ذکر هم اونه کړو اونه نې د دې امر درخواست اوکړو چه ما د جیل نه آزاد کړی بلکه بغیرد څه خواهش د اظهار یا بغیرد څه الزام نه نې د خوب پوره تعبیر اوخودلو او ورسره نې چل هم اوخودلو. ونې فرمائیل چه د اووه چاقوغواګانونه مراد دا دې چه تراووه کالوپورې به برابر د حاجت مطابق باران راوریږی کال به ښه آباد وی غلې پټی او باغونه به ښه آباد وی هم دغه مراد د اووه شنو کالونو دې. هم غواګانې او غوایان په یوو کښې جوتی کونی. په دې باندې په زمکه کښې فصل کرلې شی اوس نې ورته چل هم اوخودلو چه په دې اووه کالوکښې چه کومه غله دانه راوځی هغه د ذخیرې په توګه جمع کړنې اوکیخودل هم دبمبلونواو پوستکوسره دې د پاره چه سخا کیږی نه اوخرابیږی نه. اود خپل خوراک د ضرورت مطابق د دې نه اخلنې خوخیال کونې چه لږ شان هم زیات مه اخلئ.صرف د خپل حاجت مطابق ترې راوباسئ. د دې اووه کالو تیریدو نه پس به چه کوم قحط راځی هغه به تر اووه کالوپورې یو شان برابر وی نه به باران کیږی اونه به پیداوارکیږی. هم دغه مراد دې د اووه مانده غواګانونه اود اووه اوچوغونچونه. په دې اووه کالوکښې به هغه جمع شوی ذخیره تاسو خورئ. یادساتئ چه په دې کښې به هیڅ فصل اوغله نه کیږی هم هغه جمع کړې شوې غله به په کار راځی. تاسو به دانې کرئ خو پیداوار به هیڅ هم نه کیږی. هغوی د خوب پوره تعبیر ورکولوسره دا هم خوشخبری ورکړه چه د دې اووه اوچوکالونو نه پس چه کوم کال راځی هغه به ډیر د برکتونو والا وی ښه بارانونه به وریږی او ښه غله او فصلونه به کیږی. فراخی به وی او تنګی به نه وی او خلق به د نورکله په شان د زیتونوتیل وغیره اوباسی او د نور کله په شان به دانګورو شیره نچوړی کوی اودخاروو سینې به دېئیو نه ډکې شی اوښه پیئ به راوځی اوڅکی به نې.

وَقَالَ الْمَلِكُ ائْتُوْنِيْ بِهٖ ۚ فَلَمَّا جَآءَهُ الرَّسُوْلُ قَالَ ارْجِعْ

او اوونیل | بادشاه راولئ ماته هغه | نوهر کله چې | اراغې هغه ته | استاذې | اوونیل یوسف | واپس لاړ شه

بادشاه حکم ورکړو چې یوسفؑ ما ته راولئ | اهر کله چې استاذې هغوی له ورغئ نو یوسفؑ ورته

اِلٰى رَبِّكَ فَسْـَٔلْهُ مَا بَالُ النِّسْوَةِ الّٰتِيْ قَطَّعْنَ

رب خپل ته | اوتپوس اوکړو دهغه نه | څه دې حال | دښخو | هغو | چې غوڅ کړی نې وو

اوونیل چې خپل آقا ته و اپس ورشه او تپوس ترې اوکړه | چې د هغې ښځو څه حال دې | چې خپل

اَيْدِيَهُنَّ ؕ اِنَّ رَبِّيْ بِكَيْدِهِنَّ عَلِيْمٌ ۝ قَالَ مَا خَطْبُكُنَّ

لاسونه خپل | بیشکه | رب زما | په مکر دهغوئ | ښهٔ خبر دې | اوونیل بادشاه | څه وو حال ستاسو انې ښځو

لاسونه نې غوڅ کړی وو بیشکه زما پروردګار دهغوئ په فریبونوښهٔ پوهه دې | په دې باندې، بادشاه

اِذْ رَاوَدْتُّنَّ يُوْسُفَ عَنْ نَّفْسِهٖ ؕ قُلْنَ حَاشَ لِلّٰهِ

کله چې | تاسوغولول وغوښتل | یوسف | د هغه دنفس (د حفاظت) نه | بولو ښخو اوونیل | پاکی ده | الله لره

(ښځو ته ) اوونیل چې داستاسو څه واقعه ده | څه وخت چې تاسو یوسف د خپل مطلب دپاره راوبللوا

مَا عَلِمْنَا عَلَيْهِ مِنْ سُوْٓءٍ ؕ قَالَتِ امْرَاَتُ الْعَزِيْزِ الْـٰٔنَ حَصْحَصَ

مونږ نهٔ ده موندلې | په هغه کښې | څه بدی | اوونیل | ښځې | دعزیز (د مصر) | چې اوس | ظاهر شو

هغوئ ورته په جمع اوونیل | چې سبحان الله مونږ ته خو په هغه کښې هیڅ خرابی نهٔ ده معلومه | دعزیز ښځې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الْحَقُّ | اَنَا رَاوَدْتُّهٗ | عَنْ نَّفْسِهٖ | وَاِنَّهٗ | لَمِنَ الصّٰدِقِيْنَ۞ | ذٰلِكَ | |
| حق | ما هغه غولول او غوښتل | د هغه د نفس (د حفاظت) نه | او بيشكه هغه | د ريښتونو نه دى | دا | |

اوونيل چي اوس خو ريښتيا هرچاته معلوم شوا زۀ ووم چي ما دهغه د غولولو كوشش كړي وو او هغه بيشكه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لِيَعْلَمَ | اَنِّيْ | لَمْ اَخُنْهُ | بِالْغَيْبِ | وَاَنَّ اللّٰهَ | |
| د پاره ددي چي پوهه شي هغه | چي بيشكه ما | نه دي كړي خيانت د هغه سره | پشي شا | او بيشكه چي الله | |

ريښتوني دي يوسف اوونيل چي دامي ځكه اوكړل چي عزيز ته په ښۀ شان معلومه شي چي ما د هغه په

| | | |
|---|---|---|
| لَا يَهْدِيْ | كَيْدَ | الْخَآئِنِيْنَ۞ |
| نۀ كاميابوى | مكر | دخيانت كونكو |

غيرموجودګئ كښي خيانت نۀ دي كړي او الله دخيانت ګرو فريبونه هيڅري سر ته نه رسوى (فريب اخر ښكاره شى)

**قوله تعالى: قُلْنَ حَاشَ لِلّٰهِ مَا عَلِمْنَا عَلَيْهِ مِنْ سُوْٓءٍ**

**ديوسف ؑ دپاكدامنئ تصديق:**-دخوب تعبير معلومولو سره چه كله قاصد واپس اوګرځيدو او هغه بادشاه ته ئې د تولو حقيقتونو نه خبر كړو نو بادشاه له دخپل خوب په تعبير باندي يقين راغلو او ورسره هغه ته داهم معلومه شوه چه حضرت يوسف ؑ ډير لوئ عالم فاضل سړي دي. دخوب په تعبير كښي خو هغه ته كمال حاصل دي. ورسره د هغه د اخلاقو ښكلي تدبير اود الله ﷻ د مخلوق نفع غوښتونكي او بي لاچه سړي دي. اوس ئې شوق پيدا شو چه پخپله ملاقات اوكړي. هغه وخت ئې حكم اوكړو چه لاړشئ او حضرت يوسف ؑ د جيل نه آزاد كړئ اوماله ئې راولئ. بيا قاصد راغلو او د بادشاه پيغام ئې راورو نو هغه اوفرمائيل چه زه ددې ځائي نه نه اوځم. تركومې چه بادشاه اهل مصر او درباريان دا معلومه نه كړي چه زما څه قصور وو؟ د عزيز دښځي باره كښي چه ماسره كومه خبره ترلي ده په هغې كښي تركوم حده پورې صداقت دي؟ تراوسه پورې زما دا قيد د څه حقيقت په بنياد باندي وو كه صرف د ظلم اوزياتي په بنياد باندې وو؟ ته خپل بادشاه له واپس لاړشه اوزما پيغام ورته اورسوه چه هغه دې ددې خبرې پوره تحقيق اوكړي.

**ديوسف ؑ صبر او استقامت:**: په حديث شريف كښي هم د حضرت يوسف ؑ د دې صبر اود هغه د دې شرافت اوفضيلت تعريف راغلي دي. په بخاري اومسلم وغيره كښي دي. رسول الله ﷺ فرمائي چه د شك په حقدارئي كښي دحضرت ابراهيم ؑ په نسبت مونږ ډير زيات يو. هغه فرمائيلي وو چه زماربه ماته د مړو ژوندي كولو كيفيت اوښائي. (يعني چه كله مونږ د الله ﷻ په قدرت كښي شك نه كوو نود ابراهيم ؑ په شان جليل القدر پيغمبر څنګه شك كولي شو؟ نود هغوى دا غوښتنه د نورې تسلئ اواطمينان په خاطر وه اونه چه د شك په توګه. پخپله په قرآن پاك كښي دى چه زما د زړه د اطمينان د پاره) الله ﷻ دې په حضرت لوط ؑ باندي رحم اوكړي هغه د يو زوراور ډلي يا مضبوطي قلعه په پناه كښي راتلل غوښتل. واورئي كه ما د يوسف ؑ برابر جيل خوړلي وو او بيا قاصد زما د آزادئي پيغام

راوړلي وو نومابه هم هغه وخت د جیل خاني نه آزادی منظور کړې وه([1]) په مسند احمد کښې هم ددې آیت (فاسئله) په تفسیر کښې نقل دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل که چرې زه وې نو هم هغه وخت به مې د قاصد خبره منله او هیڅ عذر به مې نه لټولو([2]) په مسند عبدالرزاق کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی والله ماته د حضرت یوسف علیه السلام په صبراو کرم باندې حیرانتیاده الله ﷻ دې هغه ته بخښنه وکړی چه بادشاه خوب اولیدو هغه د تعبیر د پاره بې آرامه دې قاصد راخی د هغه نه تعبیر تپوس کوی هغه ډیر زر بغیر د څه شرط نه ښائی که چرې زه ووم نو ترکومې چه مې د جیل نه ځان آزاد کړې نه وو هیڅ کله به مې ورته نه خودلو. قاصد راخی نو هغه وائی چه ترکومې پورې زما پاکوالي اوبې قصوری تولوته په تحقیق کولو سره ښکاره نه شی. که چرته زه د هغه په ځائ باندې ووم نو ما خو به په منډه منډه دروازې له ځان رسولو([3]) دا روایت مرسل دې.اوس بادشاه تحقیق شروع کړو اوهغه ښځې کومې چه د عزیز ښځې په دعوت جمع کړې وې اوپخپله ئې هغه هم دربار ته راوغوښتلو.بیا ئې د هغه ټولوښځونه تپوس اوکړو چه د میلمستیا په ورځ څه واقعه شوې وه. ټوله بیان کړئی. هغوی جواب ورکړو چه په یوسف علیه السلام باندې هیڅ الزام نشته په هغه باندې بې سر اوپښو تهمت دې والله مونږ ته ښه پته ده چه په یوسف علیه السلام کښې هیڅ بدی نشته. هغه وخت د عزیز ښځې پخپله هم اووئیل چه اوس حق ښکاره شو واقعه ظاهره شوه حقیقت نچوړشو زما پخپله د دې امر اقرار دې چه واقعی هم ما هغه راګیرول غوښتل هغه چه په کوم وخت باندې وئیلې وو چه دا ښځه ما دهوکه کوی په دې کښې هغه بالکل رښتونې دې زه د دې اقرار کوم او خپل قصور پخپله بیانوم دې د پاره چه زما خاوند هم په دې خبره پوهه شی چه ما د هغه هیڅ خیانت نه دې کړې د یوسف علیه السلام د پاکوالی په وجه هیڅ شر او بدی مانه نه ده شوې. د بدکارئی نه الله ﷻ زه بچ ساتلې یم.زما ددې اقرار او واقعه د ښکاره کیدونه صفا ښکاری او زما خاوند ته معلومیدې شی چه زه په بدنی کښې اخته شوې نه ووم دا بالکل رښتیا دی چه د خیانت کونکو مکاریانو ته الله ﷻ فروغ نه ورکوی اود هغوی دهوکه هیڅ میوه نه شی راوړې.

(الحمدلله) دولمسه سپاره ختمه شوه.

---

[1] صحيح بخاری کتاب احاديث الانبياء باب قوله (ونبئهم عن ضيف ابراهيم):٣٣٧٢، صحيح مسلم:١٥١، ابن ماجه:٤٠٢٦، ابن حبا ن:٦٢٠٨،مشكل الآثار:٣٢٦، احمد:٢/٣٢٦.

[2] مجمع الزوائد:٧/٤٠، احمد:٢/٣٤٦ وسنده حسن.

[3] تفسير عبدالرزاق:١/٢٨١-٢٩٢.



| وَمَآ اُبَرِّئُ | نَفۡسِیۡ | اِنَّ النَّفۡسَ | لَاَمَّارَةٌ | بِالسُّوۡٓءِ | اِلَّا |
|---|---|---|---|---|---|
| اوزه پاكوم زه | نفس خپل | بيشكه نفس چې دې | خامخا ډير حكم كونكي دې | په بدئ سره | ماسوا |
| او خپل خان ته پاک نه وايم | | خكه چې نفس خو بنده ته بدې لارې چارې ښائي | | خو په كوم (نفس) | |

| مَا | رَحِمَ | رَبِّیۡ | اِنَّ | رَبِّیۡ | غَفُوۡرٌ | رَّحِیۡمٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| د هغه نفس نه | چې رحم اوكړو | رب زما | بيشكه | رب زما | بښونكي | مهربانه دې |
| چې زما رب رحم اوكړي (نو هغه محفوظ وي) | | | بيشكه زما رب بښونكي مهربان دې | | | |

قوله تعالىٰ: اِلَّا مَا رَحِمَ رَبِّیۡ

دنفس دشرارتونونه هم هغه بچ كيږي په چاچه د الله ﷻ رحم وي: بيازليخا (دعزيزمصر ښځې) اووئيل چه زه خپل نفس ته پاك نه وايم او نه زه هغه د هرقسم جرم نه برى كوم. په نفس كښې خو قسم قسم خراب خيالات او ناجائزخواهشات راخي اوهغه هم د بدئي طرف ته مائل كوي نودنفس په دهوكه او غولولوكښې راغلم او ما حضرت يوسف ؈ په خپل چال كښې راوستل غوښتل (خو هغه رانغلو) خكه چه نفس خو بدو ته مائل كول كوي خوچه په چا الله ﷻ رحم اوكړي او بچ ني كړي (هغه نه مائل كوي) بيشكه زما رب بښونكي او مهربان دې.

راجح قول دادې چې دا قول د عزيز د ښځې دې:: دا وينا د عزيز مصر د ښځې زليخا ده او همدغه خبره ډيره مشهوره او قابل قبول ده او د واقعې سياق او سباق سره همدغه خبره زيات مناسبت لرى او په معنوى اعتبار سره هم زياته مطابق معلوميږي او هم دا امام ماوردى رحمه الله په خپل تفسيركښې بيان كړيده. امام ابن تيميه رحمه الله خو په دې يو مستقل كتاب تصنيف كړيدې. او په هغې كښې د دې قول پوره حمايت او تائيد كړې دې.

خو بعض خلق دا هم وائي چه دا قول د حضرت يوسف ؈ دې (ذٰلِكَ لِيَعۡلَمَ) نه واخله (غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ) پورې دكوم مطلب چه دا شوچه حضرت يوسف ؈ اوفرمائيل د دې د پاره چه عزيز مصر پوهه شي چه د هغه په غيرموجودګنى كښې ما هغه د ښځې باره كښې هيڅ خيانت نه دې كړې. ابن جرير او ابن حاتم رحمهما الله خود دې قول نه علاوه بل څه قول هډو بيان كړې نه دې. تفسير ابن جرير رحمه الله كښې دى چه ابن عباس ؓ فرمائي چه كله د يوسف ؈ په وينا باندې بادشاه د ښار دښځونه د هغوى باره كښې معلومات اوكړل نو هغوى اووئيل چه مونږ خو په هغه كښې هيڅ خرابى نه ده ليدلې او زليخاهم اقرار اوكړو چه حق خبره هم دغه ده. هم ما د ده د غولولو كوشش كړې وو نو حضرت يوسف ؈ اووئيل چه ما دا هرڅه ددې د پاره اوكړل چه عزيز مصر ته معلومه شي چه ما د هغه په غيرموجودګنى كښې د هغه هيڅ خيانت نه دې كړې. حضرت جبرائيل ؈ هغه ته اوفرمائيل چه څه په هغه ورخ دې هم نه ده كړې په كومه ورڅ چه هغه ښځې ستا اراده اوكړه او تا دهغې ښځې (واضح دى وې چه حضرت يوسف ؈ اراده نه وه كړې بلكه الله ﷻ دا فرمائي كه چرې هغه ته د الله ﷻ نښاني (دليل) نه وو خودلې شوې نو هغه رخت به خامخا تا اراده كوله. مګر دې نښانوته د كتو په وجه ته په تقوى باندې قائم پاتې شوې. نو هله هغه اوفرمائيل چه زه خپل نفس ته بدنه وايم نفس خو هم د بدوترغيب وركوى. مجاهد، سعيد بن جبير، عكرمه ابن ابى الهذيل، ضحاك، حسن، قتاده او سدى رحمهم الله ټول هم د دې قائل دې ليكن رومبې قول (يعنى دادزليخا كلام كيدل) هم زيات قوى اوظاهر دى خكه چه د روستى كلام آخرى حصه د عزيز مصردښځې زليخا دې چه هغې دټولوپه وړاندې بادشاه ته بيان كولواوحضرت يوسف ؈ هلته موجود نه وو (بلكه په جيل كښې وو) د دې ټولو خبرو اترونه پس بادشاه هغه راغوښتې وو.

وَقَالَ الْمَلِكُ
| او اووئیل | بادشاه
||اوبادشاه اووئیل

اِئْتُوْنِيْ بِهٖٓ اَسْتَخْلِصْهُ لِنَفْسِيْ ۚ فَلَمَّا كَلَّمَهٗ
راولئ ماته| هغهٔ |چي مخصوص کړم زهٔ هغهٔ |د پاره د خان خپل| نوهرکله چي| خبري اوکړي بادشاه د هغهٔ سره
هغهٔ ماته راولئ | چي زهٔ ئي خپلو خاصو کارونو د پاره اوساتم| کله چي ئي ورسره خبري اوکړي

قَالَ اِنَّكَ الْيَوْمَ لَدَيْنَا مَكِيْنٌ اَمِيْنٌ ۞ قَالَ اجْعَلْنِيْ
وې وئیل | بیشکه تهٔ | نن ورځ | زمونږ سره | عزت والا | امانت دار یې | اووئیل یوسف | مقرر کړه ما
نو ورته ئې اووئیل چي تهٔ د نن نه زما په دربار یانو کښې عزتمند او معتبر شوې|یوسف ورته اووئیل چي ما دوځن

عَلٰى خَزَآئِنِ الْاَرْضِ ۚ اِنِّيْ حَفِيْظٌ عَلِيْمٌ ۞
په خزانو | د زمکي | بیشکه زهٔ| حفاظت کونکي یم| ښهٔ پوهه یم|
په خزانو باندې مقرر کړه |بیشکه زهٔ ډیر محافظ یم ||او(ددې کارنه) پوره واقف یم|

**قوله تعالی:: قَالَ اجْعَلْنِيْ عَلٰى خَزَآئِنِ الْاَرْضِ ۚ**

**خپل قابلیت د ضرورت په وخت کښې بیانول:** کله چه د بادشاه په وړاندې دحضرت یوسف ﷺ بې ګناهي ښکاره شوه نو خوشحاله شو او ونې وئیل چه دې ماله راولئې چه زه دې په خپلو خاص مشیرانو کښې کړم چه کله هغوی تشریف راوړو او بادشاه سره ملاوشو هغه دده صورت مبارك اوکتلو، د هغوی خبرې واوریدې د هغه اخلاق ئې اوکتل نو زړه ئې پرې عاشق شو او ناخاپې د هغه د خُلې نه اووتل چه د نن نه ته زمونږ دپاره معزز او معتبر ئې. پدې خبره حضرت یوسف ﷺ دخپل خان دپاره یوخدمت خوښ کړلو او د هغې اهلیت ئې ښکاره کړو. د انسان د پاره دا جائزدی چه کله دې په ناپیژندګلو خلقو کښې وی نود ضرورت په وخت دې دې خپل قابلیت بیان کړی. د هغه خوب په وجه د کوم تعبیر چه هغوی بیان کړې وو هغوی همدغه خواهش اوکړو چه د زمکې پیداوار او غله وغیره چه جمع کولې شی په هغې ما اولګونی چه زه د هغې حفاظت اوکړم اود خپل علم مطابق عمل اوکړې شم او مخلوق ته د قحط کالنی او مصیبت په وخت کښې څه قدرې آسانی ملاوشی. د بادشاه په زړه باندې خود هغه د ایماندارنی، رښتین ولنی، سلیقه مندنی او کامل علم رعب ناست وو هم هغه وخت ئې دغه درخواست منظور کړو.

وَكَذٰلِكَ مَكَّنَّا
||اوپه دې طریقه| خائې ورکړومونږ
| اودغه شان مونږ

لِيُوْسُفَ فِى الْاَرْضِ ۚ يَتَبَوَّاُ مِنْهَا حَيْثُ يَشَآءُ ۚ
یوسف ته| په زمکه کښې | دې به اوسیدو | هغه خائې | کوم خائې چې| دهٔ غوښتل
یوسف ﷺ د(مصر)اختیارمند کړو| چي کوم خائې ئې زړهٔ غواړی | نوهلته دې اوسیږی

| نُصِيبُ | بِرَحْمَتِنَا | مَنْ | نَّشَآءُ | وَلَا نُضِيعُ | أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| رسوو مونږ | رحمت خپل | هغه چاته | چې اوغواړو مونږ | او نه ضائع کوو مونږ | اجر د نیکانو خلقو |

مونږ چې څوک اوغواړو نو خپل رحمت ورته رسوو او مونږ د نیکانو بدله هیچرې نه ضائع کوو

| وَلَأَجْرُ الْآخِرَةِ | خَيْرٌ | لِّلَّذِينَ | آمَنُوا | وَكَانُوا | يَتَّقُونَ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| او اجر د آخرت | بهتر دې | د پاره دهغه کسانو | چې ایمان ئې راوړو | او وو هغوی | چې ویریدل د الله نه |

او د هغه کسانو د پاره د آخرت بدله ډیره ښه ده چې ایمان ئې راوړې دې او پرهیزګاران دی

قوله تعالی:: وَكَذَٰلِكَ مَكَّنَّا لِيُوسُفَ فِي الْأَرْضِ

**حضرت یوسف ؑ دمصر حاکم جوړ شو:-** دمصر په زمکه کښې داسې دحضرت یوسف ؑ ترقی اوشوه. اوس دهغه په اختیارکښې وه چه څنګه غواړې تصرف کولې شي. چرته چه غواړې مکانات جوړولې شي. یا هغه یوازې والی او قید ته اوګورئی او یا دې اختیار او آزادئی ته اوګورئی. رښتیا دی چه رب چاته څومره حصه د خپل رحمت ورکول غواړې ورکوی او د صبر کونکو صبر آخر میوه راوړی. د روږد تکلیفونه ئې برداشت کړل، د الله ﷻ د نافرمانئې نه د بچ کیدلو د پاره د عزیزمصر ښځې سره ئې اورانه کړه اود قیدخانې سختئې ئې اوزغملې. نود الله ﷻ درحمت لاس ورانډې شواود صبر اجر ملاؤ شو.د نیکوکارو نیکئې چرې هم نه ضائع کیږی. بیا داسې ایماندار او تقوی دار په آخرت کښې اوچتې درجې او اوچت ثوابونه بیامومی. دلته دا ملاؤشو اود هغه ځائ د ملاویدلو خو څه تپوس مه کوئی. د حضرت سلیمان ؑ باره کښې هم په قرآن پاک کښې راغلی دی چه دا د دنیا دولت او بادشاهی مونږ تاته په خپل احسان سره درکړی دی اوپه قیامت کښې هم مونږ سره ستاد پاره ښه میلمستیاده.

**اخر ریان خپله بادشاهی یوسف ؑ ته ورکړه::** لهذا دا چه شاه مصر ریان ابن ولیدد مصر بادشاهی هغه ته ورکړې وه. اول په دې منصب باندې د دغه ښځې خاوند وو کومې چه دې خپل ځان طرف ته مائل کولو هم دې هغه اخستې وو او آخر د مصر بادشاه د هغه په لاس ایمان راوړو. ابن اسحاق ؒ فرمائی چه د هغه د اخستونکی نوم اطفیرو. هغه هم په دغه ورځوکښې وفات شوې وو.

**د یوسف ؑ سره د زلیخه نکاح::** د هغې نه پس بادشاه د هغه د بی بی راعیل سره د حضرت یوسف ؑ نکاح اوکړه.کله چه هغه دې سره ملاؤ شو نو وئې فرمائیل چه وایه چه دا ستاد هغه ارادې نه بهتر نه دی؟ هغه جواب ورکړو چه اې ملګریه ما مه ملامت کوه. تاته معلومه ده چه زه د حسن او ښائست او دولت منده ښځه وم، زما خاوند مردمئی نه محروم وو هغه ماسره ملاویدې نشو. بل طرف ته چه تاته قدرت په کومه فیاضئی سره دحسن په دولت باندې مورکړې وې هغه هم معلومه خبره ده نوما اوس مه ملامت کوه. وائی چه واقعی حضرت یوسف ؑ هغه بالکل د پیغلې په شان اوکتله او د هغې د خیټې نه د هغه دوه خامن اوشو، افرائیم او میشا. د افرائیم نه نون پیدا شو چه د حضرت وشع ؑ پلار دې او رحمت نومې لور پیدا شوه چه د حضرت ایوب ؑ بی بی ده. حضرت فضیل بن عیاض ؒ فرمائی چه د عزیز ښځه په لارکښې ولاړه وه چه کله د حضرت یوسف ؑ سورلی راغله نو بې اختیاره ئې د خلې نه اوتل ﴿ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ﴾ د الله ﷻ د شان نه قربان شم چه په خپله فرمانبردارئی غلامان بادشاهئی ته اورسول او د خپلې نافرمانئې په وجه ئې بادشاهان غلامئی ته راکوزکړل

وَجَآءَ اِخْوَةُ يُوْسُفَ فَدَخَلُوْا عَلَيْهِ فَعَرَفَهُمْ وَهُمْ لَهٗ

اوراغلل| رونړه |د يوسف | نو ورداخل شو | په هغه باندې| نو اوپيژندل هغهٔ هغوئ | اوهغوئ | هغهٔ

اوديوسف عليه السلام رونړه هم(مصر) ته راغلل | اوهغهٔ ته ورغلل| نوهغهٔ اوپيژندل | او هغوئ دې اونهٔ

مُنْكِرُوْنَ ﴿۵۸﴾ وَلَمَّا جَهَّزَهُمْ بِجَهَازِهِمْ قَالَ ائْتُوْنِيْ

نهٔ پيژندونکی وو| او هركله چې | تيار کړو يوسف هغوئ د پاره| سامان دهغوئ| نووې ونيل| راولئ ما ته

پيژندې شو | اوهركله چې يوسف عليه السلام هغوئ ته سامان تيار كړو | نو ورته ئې اوونيل | چې تاسو

بِاَخٍ لَّكُمْ مِّنْ اَبِيْكُمْ ۚ اَلَا تَرَوْنَ اَنِّيْٓ اُوْفِی الْكَيْلَ وَاَنَا

رورا ستاسو | چې دپلاره ستاسو نه دی| آيا نهٔ وينئ تاسو| چې بيشكه زهٔ| پوره وركوم| پيمانه | او زهٔ

د خپل پلار نه (ميرنی) رور هم راولئ | آيا تاسو نهٔ گورئ چې زهٔ پوره پيمانه وركوم

خَيْرُ الْمُنْزِلِيْنَ ﴿۵۹﴾ فَاِنْ لَّمْ تَاْتُوْنِيْ بِهٖ فَلَا كَيْلَ لَكُمْ

بهتره| دميلمستيا وركونكو نه يم| نوكه| رانهٔ وستوتاسوماته | هغه | نونشته پيمانه | ستاسو د پاره

او ښهٔ ميلمستيا وركوم |كه چرې تاسو هغهٔ ماله رانهٔ وستو |نو تاسو ته به زما دطرفنه غله نهٔ ملاويږی

عِنْدِيْ وَلَا تَقْرَبُوْنِ ﴿۶۰﴾ قَالُوْا سَنُرَاوِدُ عَنْهُ اَبَاهُ

زماسره| اومهٔ راځئ نزدې ماته | اوونيل هغوئ| مونږبه کوشش اوكړودغوښتلود هغهٔ | د پلار د هغهٔ نه

اونهٔ به زما خوا ته رانزدې كيږئ | هغوئ اووئيل چې مونږ به ئې د پلار نه ضرور اوغواړو

وَاِنَّا لَفٰعِلُوْنَ ﴿۶۱﴾ وَقَالَ لِفِتْيٰنِهِ اجْعَلُوْا

او بيشكه مونږ| خامخا كونكی يو ددې كار | او اوونيل يوسف | غلامانو خپلو ته | چې كيږدئ

اوداكار به ضرور كوؤ| يوسف عليه السلام خپلو خادمانو ته اووئيل | چې د دوئ ادا كړې قيمت

بِضَاعَتَهُمْ فِيْ رِحَالِهِمْ لَعَلَّهُمْ يَعْرِفُوْنَهَآ اِذَا

قيمت دسامان دهغوئ | په بارونو دهغوئ كښې | دپاره ددې چې هغوئ | او پيژنی هغه | كله چې

د دوئ په سامان كښې پټ كيږدئ | كيدې شی چې خپلو خپلوانو ته واپس اورسی | نو

انْقَلَبُوْٓا اِلٰٓى اَهْلِهِمْ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ﴿۶۲﴾

واپس لاړشی هغوئ| كور خپل تهٔ| شايد چې هغوئ| واپس راشی |

وې پيژنی |اوكيدې شی چې په دې وجه واپس راشی |

**قوله تعالىٰ:: وَجَآءَ اِخْوَةُ يُوْسُفَ**

**ديوسف عليه السلام رونړه په مصركښې** :- وانی چه حضرت يوسف عليه السلام د مصر د وزير په حيثيت سره اوه كاله غله دانه په ښه توگه راجمع كړه. دې نه پس چه كله عام قحط كالی شروع شوه اوخلق يوې يوې دانې ته محتاج شو نو هغوی محتاجانوته وركول شروع كړل.دا قحط د مصر دعلاقې نه واخله ترکنعان پورې ښارونوكښې وو.هغه به هر يو باهرنی سړی ته د غلې ډك اوښ وركولو اوپخپله د هغه لښكر بلكه

بادشاه پخپله په تول ورځ کښې صرف یو ځل یوه نیمه نمرتي خوړله. او اهل مصر باندې به نې په ډکه خېټه خوراك كولو. نو په دغه زمانه کښې دا خبره د الله ﷻ یو رحمت وو. دا هم روایت دې چه هغوی په رومبی کال د مال په بدل غله خرڅوله. په دوئم کال د سامان او اسباب په بدله کښې او په دریم کال هم او په څلورم کال هم، بیا پخپله د خلقو او د هغوی د اولاد په بدله نو دغه خلق اود هغوی اولاد او د هغوی د مال دوی مالکان جوړشو. خود دې نه پس هغوی دا ټول آزاد کړل اود هغوی مال نې هم هغه خلقو ته حواله کړو. دا روایت د بنواسرائيل دې کوم ته چه مونږ رښتيا اودروغ نشو ونیلې. دلته دا خبره بیانیږي چه په دې راتلونکو خلقو کښې د حضرت یوسف ﷺ رونړه هم وو چه د پلار په حکم راغلی وو. هغوی ته معلومه شوې وه چه عزیزمصرد مال په بدله غله ورکوی. نو یعقوب ﷺ خپل لس خامن هلته اولیګل اود حضرت یوسف ﷺ سکه رور بنیامین چه د یوسف ﷺ نه پس د هغه پلارته د ټولونه زیات ګران وو خپل ځان سره نې حصارکړو.

**د یوسف ﷺ د رونړونه عجیبه سوالونه:** کله چه دا قافله دالله ﷺ نبی له راورسیدل نوهغه په یونظرټول اوپیژندل خویه دوی کښې یو هم دې اونه پیژندلو. ځکه چه هغه د دوی نه په وړوکوالی کښې جدا شوې وو. رونړو دې د سودا ګرو په لاس خرڅ کړې وو، هغوی ته څه پته وه چه بیا څه اوشو او دا خو په ګمان کښې هم نشو راتلې چه هغه ماشوم کوم چه د غلام په حیثیت خرڅ شوې وو نن هم هغه عزیز مصر جوړشوې دې اوبل طرفته حضرت یوسف دخبرو طرز داسې اختیارکړې ووچه هغوی ته دا ګمان هم اونه شو.د هغوی نه نې تپوس اوکړو چه تاسو خلق زمونږ ملك ته څنګه راغلئ؟هغوی ونیل چه دې اوریدو سره به ته مونږ ته غله راکړې. هغه ونیل چه زما شك دې چه تاسو چرته جاسوسان خو نه نې؟ هغوی ونیل د الله پناه مونږ جاسوسان نه یو، ونی فرمائیل چه تاسو د کوم ځائ اوسیدونکی نې؟ هغوی ونیل د کنعان او زمونږ د والد محترم نوم حضرت یعقوب ﷺ د الله نبی دې. هغوی تپوس اوکړو چه تاسو نه علاوه د هغه نور خامن هم شته؟ هغوی ونیل چه او مونږ دولس رونړه وو. مونږ کښې چه کوم کشر وواو زمونږ د پلار دسترګو ستورې وو، هغه هلاك شو،هم دهغه یو رور وو،هغه پلارمونږ سره اونه لیګلو بلکه خپل ځان سره نې حصارکړو چه په هغه سره پلار ته اطمینان او تسلی وی. د دې خبرونه پس هغوی حکم ورکړو چه دوی سرکاری میلمانه اوګنړنی او هرقسم خاطرنې اوکړنی او په بنه ځائ کښې حصار کړنی. اوس چه کله هغوی ته غله ورکړېشوه اودهغوی بوجنی نې ډکې کړې او خومره څاروی چه هغوی سره وو او څومره غله نې اوچتولې شوه ورنې کړه او ورته نې اوفرمائیل چه د خپل صداقت د اظهار د پاره خپل هغه رور کوم چه تاسو ځان سره دې ځل نه دې راوستې هغه راولئ. ګورئ ما تاسو سره بنه اخلاق اوکړل او ستاسو مې ډیرخاطر او میلمستیا اوکړه.دغه شان رغبت ورکولو سره نې دهمکی هم ورکړه که دوباره راتلوکښې موخان سره رانه وستلو نو یوه دانه غله به هم درنه کړم بلکه تاسو به خپل ځان سره هم پرینږدم. هغوی وعده اوکړه چه مونږ به هغه ته اووایو اولالچ وغیره به ورکړو او د هرقسم کوشش به کوو چه خپل هغه رور هم راولو اود بادشاه په وراندې مونږ درغڼ نشو.

**یوسف ﷺ ددوئ نه د رور راوستلو دپاره کانړه واخستل:** سدی ﷺ فرمانی چه حضرت یوسف ﷺ د هغوی نه ګانړه واخسته چه کله مو راوستلو نو دا به واخلئ خو داخبره زړه ته څه بنه نه لګی ځکه چه هغه خو دوی ته د واپسئ ډیر لوئ رغبت او ډیره تمنا ظاهره کړې وه.کله چه رونړو د تلو تیارې اوکړو نوحضرت یوسف ﷺ خپل کارندوته اشاره اوکړه چه کوم سامان دوی راوړې وو اودخه په عوض چه دوی مونږ نه غله اخستې ده هغه هم واپس کړنی خو په دې هوښیارتیا سره چه دوی ته پته هم اونه لګی. دهغوی په کجاوو او بورو کښې هغه ټول څیزونه کیږدنی.ممکن ده چه دا وجه وی چه هغه ته دا خیال شوې وی چه اوس به په کورکښې څه وی کوم څیز دپاره چه دوی بیا راشی اوبیا غله واخلی او دا

هم كيديشى چه د خپل رور او پلارنه د غلې په معاوضه كښې څه اخستل مناسب نه وو ګنړلې او دا هم ګمان دې چه هغه دا خيال كړې وى چه كله دوى خپل سامانونه كولاوكړى او داهرڅه اووينى نو خامخابه دوى زمونږ څيزونو واپس كولو د پاره راځي نو په دې بهانه باندې به رور سره ملاقات اوشي.

فَلَمَّا رَجَعُوٓا
| نوهركله چې | واپس لاړل هغوئ
انوكله چې هغوئ خپل پلار ته واپس اورسيدل

إِلَىٰٓ أَبِيهِمْ قَالُوا۟ يَـٰٓأَبَانَا مُنِعَ مِنَّا ٱلْكَيْلُ فَأَرْسِلْ مَعَنَآ
پلار خپل ته | نووې وئيل | ائې پلاره زمونږ | منع كړې شوه | زمونږنه | پيمانه| نو اوليږه | زمونږ سره
نو وې وئيل | چې ائې زمونږ باباجانه! په مونږ بيا د پاره غله بنده شوې ده | زمونږ سره زمونږ رور

أَخَانَا نَكْتَلْ وَإِنَّا لَهُۥ لَحَـٰفِظُونَ ۝ قَالَ
رور زمونږ| چې پيمانه راوړو | او بيشكه مونږ | د دهٔ | خامخا حفاظت كونكي يو | اوونيل يعقوب
اوليږه | چې غله راوړو | اومونږ به د هغهٔ حفاظت كوو | ..........يعقوب ﷺ اووئيل چې

هَلْ ءَامَنُكُمْ عَلَيْهِ إِلَّا كَمَآ أَمِنتُكُمْ عَلَىٰٓ أَخِيهِ
اياعتباراوكړم په تاسو| په حق ددهٔ كښې | مګرهغسې | لكه چې | مااعتبار كړې وو | په حق د رور ددهٔ كښې
ايا زه ددهٔ په باره كښې په تاسوباندې هغه شان اعتبار اوكړم الكه چې له دې نه وړاندې مې د دهٔ د رور

مِن قَبْلُ ۖ فَٱللَّهُ خَيْرٌ حَـٰفِظًا ۖ وَهُوَ أَرْحَمُ
مخكښې د دې نه| پس الله | بهتر دې | په لحاظ دحفاظت كولو سره | او هغهٔ | زيات رحم كونكې دې
(يوسف) په باره كښې درباندې كړې وو ابس هم الله ډير ښهٔ محافظ دې اهغهٔ د ټولو نه زيات مهربان دې

ٱلرَّٰحِمِينَ ۝
د رحم كونكو نه |
اوهركله چې هغوئ سامان پرانستو |

قوله تعالى:: فَلَمَّا رَجَعُوٓا إِلَىٰٓ أَبِيهِمْ

**د يوسف ﷺ د رونړو واپسي:-** بيان كيږى چه كله پلار ته راورسيدل نو هغوى اوونيل اوس مونږ ته غله نشى ملاويدې ترهغه وخته پورې چه تاسو مونږ سره زمونږ رور اونه ليګنى كه دې مونږ سره وو نو كيديشى چه ملاوشى. تاسو بې فكره اوسيږئى مونږ به دهغه خيال ساتو. د **(نكتل)** دونم قراءت **(يكتل)** هم دې. حضرت يعقوب ﷺ اوفرمائيل بس تاسو به ده سره هم هغه كار اوكړئى كوم چه مود ده رور حضرت يوسف ﷺ سره كړې وو چه د دې ځائ نه مو بوتلو اوبيا دلته په رارسيدو باندې مو څه خبره جوړه كړه. **(حافظا)** دونم قراءت **(حفظا)** هم دې. هغه فرمائى هم الله ﷻ بهترين حافظ اوساتندونكې دې او هغه خودې الرحم الراحمين زما په بوډاوالى او زماپه كمزورئى باندې رحم اوكړئى او كوم غم او تكليف چه ماته د خپل بچى دې هغه به لرې كړى. زما د هغه پاك ذات نه دا اميد دې چه هغه به زما يوسف ماسره بيا ملاوكړى. او زما خفګان به لرې كړى په هغه باندې يو كار هم مشكل نه دې اونه هغه په خپلوبند يګانو باندې خپل رحم اوكرم بندوى.

وَلَمَّا فَتَحُوا مَتَاعَهُمْ وَجَدُوا بِضَاعَتَهُمْ

او هرکله چې | پرانستو هغوئ | سامان خپل | بیا موندو هغوئ | مال خپل

اوهرکله چې هغوئ سامان پرانستو | نو خپل مال ئې بیاموندو | کوم چې

رُدَّتْ إِلَيْهِمْ ط قَالُوا يَا أَبَانَا مَا نَبْغِي ط هَذِهِ

چې واپس کړې شوې دې | هغوئ ته | اوونیل هغوئ | ائې پلاره زمونږ | څه غواړو مونږ | دادې

ورته واپس شوې وو | هغوئ اوونیل چې ائې بابا! مونږ لا نور څه غواړو ؟ | .............دا دې

بِضَاعَتُنَا رُدَّتْ إِلَيْنَا ج وَنَمِيرُ أَهْلَنَا وَنَحْفَظُ

مال زمونږ | چې واپس کړې شوې دې | مونږ ته | او خوبه اوغله به راوړو | بال بچ خپل ته | اوحفاظت به کوو مونږ

زمونږ مال هم مونږ ته واپس شوې دې | اومونږ به د خپل کور والو د پاره نوره غله راوړو | او د خپل

أَخَانَا وَنَزْدَادُ كَيْلَ بَعِيرٍ ط ذَلِكَ كَيْلٌ يَسِيرٌ ۝ قَالَ

د رور زمونږ | او زیات به راوړو | (بار) پیمانه | داوبښ | دا | پیمانه ده | آسانه | اوونیل یعقوب

رور به حفاظت کوؤ | اودیو اوبښ بار به زیاتی راوړو | دیو اوبښ غله به ډیره په اسانه ملاؤ شی | یعقوب علیه السلام

لَنْ أُرْسِلَهُ مَعَكُمْ حَتَّى تُؤْتُونِ مَوْثِقًا مِنَ اللَّهِ

هرگزنه لیږم زهٔ دې | تاسو سره | ترهغې پورې | چې راکړئ تاسو ماته | وعده محکمه | د الله په نوم

اوونیل | زهٔ به هیڅ کله دې تاسو سره اونهٔ لیږم | ترڅو چې ماته دالله ﷻ په نوم پوخ قول رانه کړئ

لَتَأْتُنَّنِي بِهِ إِلَّا أَنْ يُحَاطَ بِكُمْ ج فَلَمَّا آتَوْهُ

چې خامخابه واپس راولئ ماته | دې | بغیر ددې نه | چې گیرشئ تاسو | نوکله چې | ورکړه هغوئ هغهٔ ته

چې ماته به ئې خامخا واپس راولئ | البته دا چې تاسوټول پخپله چرته راگیر شئ | نو هرکله چې هغوئ

مَوْثِقَهُمْ قَالَ اللَّهُ عَلَى مَا نَقُولُ وَكِيلٌ ۝

وعده محکمه خپله | نواوونیل یعقوب | چې الله | په هغه څه | چې وایو مونږ | ضامن دې

پوخ قول ورکړو | نو یعقوب علیه السلام اوفرمائیل | چې مونږ څه وایو الله ﷻ ددې ضامن دې

**قوله تعالیٰ: قَالُوا يَا أَبَانَا مَا نَبْغِي ط**

**یوسف علیه السلام غله هم ورکړه او قیمت ئې هم واپس کړو:-** دا اول بیان اوشو چه د رونړود واپسئ په وخت د الله ﷻ نبی د هغوی مال او متاع سره د اسبابو ټول په پټه هغوی ته واپس کړې وو. کله چه هغوی کورته اورسیدل اوکجاوې کولاؤکړې او ټول سامان ئې جدا جدا کړو نو خپل ټول خیزونه ئې هم هغه شان اوموندل نو خپل پلارته ئې اووئیل چه اوس واخله نور څه غواړې، هر څه خو عزیز مصر مونږ ته واپس کړل اود بدلې غله ئې هم پوره پوره راکړه. اوس خو مونږ سره خپل رور پریږده نو مونږ به د خپل خاندان دپاره غله هم راوړو اود رور په وجه به راته د یو اوبښ بار نور هم ملاؤشی خکه چه عزیزمصر هر یو کس ته یو اوبښ بار ورکوی. او تاسو دې مونږ سره لیږلوکښې ولې تامل کوې؟ مونږ به د هغه پوره خیال اوپالنه کوو. دا ناپ ډیر آسان دې، دا وو د کلام تتمه او کلام بنه کول.حضرت یعقوب علیه السلام ددې ټولو خبرو باره کښې فرمائی چه ترکومې تاسو حلفیه اقرار اونکړئی چه خپل دا رور

به ماته خپل خان سره واپس رارسوئی ګنی نو زه به ني تاسو سره نه ليګم. او دا يوپله خبره ده چه ټول راګيرشئی او راخلاص نه شئی. نو خامنو الله ﷻ ترمينځه کړو او کلکه وعده ني اوکړه. اوس حضرت يعقوب ؑ اوفرمائيل چه زمونږ د دې خبرو اترو الله ﷻ وکيل دی. خپل خوږ خوئ هغوی سره کړو. خکه چه د قحط د وجه د غلې ضرورت وو او بغيرد ليګلو نه بل څه لار نه وه.

وَقَالَ يٰبَنِيَّ لَا تَدْخُلُوْا مِنْۢ بَابٍ وَّاحِدٍ وَّادْخُلُوْا مِنْ اَبْوَابٍ مُّتَفَرِّقَةٍ ؕ

او وې وئيل اې زما خامنو| مهٔ ننوځئ | په دروازه يوه باندې | او ننوځئ | په دروازو مختلفو باندې

اوهغه اووئيل اې زما خامنو! تاسوهم د يوې دروازې نه (ښارته) مهٔ ورننوځئ | بلکه په جدا جدا دروازو

وَمَآ اُغْنِيْ عَنْكُمْ مِّنَ اللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ ؕ اِنِ الْحُكْمُ اِلَّا لِلّٰهِ ؕ

او نهٔ شم دفع کولې زهٔ | ستاسو نه | د حکم د الله نه | هيڅ څيز | نهٔ دې حکم | مګر | الله لره دې

داخل شئ اوزهٔ د الله ﷻ د څه فيصلې نه تاسو بچ کولې نهٔ شم | د هغهٔ نه بغير د بل هيچا حکم نهٔ چليږي

عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ ۚ وَعَلَيْهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُتَوَكِّلُوْنَ ۝

په هغه باندې| بهروسه کړې ده ما| او هم په هغهٔ باندې| پکار دې چې توکل کوی | توکل کونکی خلق

په هغه مې بهروسه ده | .....................او په هغه دې بهروسه کونکې بهروسه اوکړی

وَلَمَّا دَخَلُوْا مِنْ حَيْثُ اَمَرَهُمْ اَبُوْهُمْ ؕ مَا كَانَ

اوکله چې | ننوتل هغوئ | د هغه طرفنه | چې حکم کړې ووهٔ هغوئ ته | پلار د هغوئ | نهٔ ووٚ

اوکله چې هغوئ د هغه ځائې نه ورننوتل د کوم نه چې دوئ ته د دوئ پلار حکم کړې وو | دالله ﷻ

يُغْنِيْ عَنْهُمْ مِّنَ اللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ اِلَّا حَاجَةً فِيْ نَفْسِ يَعْقُوْبَ

چې دفع کړی نې وې| دهغوئ نه| دحکم دالله نه| څه څيز | مګر |دا يو شك ووٚ|په زړهٔ کښې | ديعقوب

په مقابله کښې هيڅ تدبير هم دهغوئ په کار راتلې نشو | دا خو ديعقوب ؑ په زړهٔ کښې يو ارمان وو

قَضٰىهَا ؕ وَاِنَّهٗ لَذُوْ عِلْمٍ لِّمَا عَلَّمْنٰهُ

چې ترسره نې کړو|اوبيشکه هغهٔ|خامخا خاوند د علم ووٚ|په سبب ددې|چې تعليم ورکړې ووٚمونږ هغهٔ ته

چې هغه نې پوره کړو | او هغهٔ د علم خاوند وو| خکهٔ چې مونږ ورته علم ورکړې وو

وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝

خوليکن | زيات | د خلقو نه | نهٔ پوهيږی په حقيقت |

خوزيات خلق په دې حقيقت نهٔ پوهيږی

**قوله تعالى:: وَقَالَ يٰبَنِيَّ لَا تَدْخُلُوْا مِنْۢ بَابٍ وَّاحِدٍ**

**دحضرت يعقوب ؑ خامنوته وصيت.** د الله ﷻ نبی حضرت يعقوب ؑ ته دخپلو بچو د نظره کيدو ويره وه خکه چه هغوی ښه تکړه، ښانسته مضبوط خوانان وو. په دې وجه د تلو په وخت کښې هغوی ته فرمائی چه خوږو بچو تاسو ټول د ښار په يوه دروازه ښار ته مه داخليږئی بلکه په مختلفو دروازو يو يو دوه دوه لاړشئی.

**نظر لګيدل حق دي ::** ځکه نظرلګيدل حق دي په اس سور داسې نه راغورزوی بيا ورسره فرماني چه په دې زه پوهيږم او دا زما ايمان دې چه داتدبير په تقدير کښې اخواديخوا نشي کولې د الله ﷻ قضا هيڅ څوک په خپل تدبير سره نشي بدلولې. د الله ﷻ غوښتنه به پوره کيږي.حکم هم د هغه چليږي، څوک دې چه د هغه اراده بدله کړي؟ د هغه فرمان روستوکړي؟د هغه قضاواپس کړي؟زما يقين هم په دې باندې دې او په ما څه موقوف دی دهريو توکل کونکي په هغه باندې توکل کول پکار دی. خامنود بلار حکم اومنلواوهم دغه شان په مختلفو دروازو کښې تقسيم شواوښار کښې داخل شو.دغه شان هغه قضا خو واپس کولې نشوه خوحضرت يعقوب ﷺ يو ظاهری تدبير پوره کړو چه دې سره به هغوی د بد نظر نه بچ شي. هغه ذی علم وو د الله ﷻ علم هغه سره وو او اکثر خلقو په دې نه پوهيږي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَلَمَّا | دَخَلُوْا | عَلٰى يُوْسُفَ | |
| او هر کله چې | ورداخل شوا | په يوسف باندې | |
| او کله چې هغوئ يوسف ﷺ ته ورغلل | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اٰوٰى | اِلَيْهِ | اَخَاهُ | قَالَ | اِنِّیْۤ اَنَا اَخُوْكَ | فَلَا تَبْتَئِسْ |
| رانزدې ئې کړوا | خان ته | رور خپل | ورته ئې اووئيل | بيشکه زه رور ستا يم | نومه کوه غم ته |
| نو هغه خپل سکه رور خان سره يو ځائې کړوا او ورته ئې اووئيل چې هم زهٔ ستا رور (يوسف) يم انو ته | | | | | |

| | | |
|---|---|---|
| بِمَا | كَانُوْا | يَعْمَلُوْنَ ﴿۶۹﴾ |
| په هغه کارونو | چې وو هغوئ | چې کول به يئ |
| د دوی په کارونو مهٔ غمژن کيږه | | |

قوله تعالى:: اِنِّیْۤ اَنَا اَخُوْكَ

**حضرت يوسف ﷺ خپل رور بنيامين اوپيژندلو:-** بنيامين چه د حضرت يوسف ﷺ سکه رور وو هغه سره د نورو رونړو چه کله مصر ته اورسيدل نو هغه په خپله سرکاری مهمان خانه کښې ميشته کړل، ډير عزت اواکرام ئې اوکړو اوصله اوانعام اواکرام ئې ورکړو.خپل رورته ئې په خان له ځائ کښې اوفرمائيل چه زه ستا رور يوسف يم الله ﷻ په ما باندې انعام او اکرام کړيدې. اوس تاله پکار دی چه رونړو ماسره کوم سلوک کړې وود هغې خفګان مه کوه او حقيقت په دوی باندې مه ښکاره کوه. زه په کوشش کښې يم چه په څه نا څه طريقه تا خان سره حصار کرم.

| | | |
|---|---|---|
| فَلَمَّا | جَهَّزَهُمْ | |
| نو هر کله چې | تيار کړو يوسف هغوئ د پاره | |
| کله چې ئې د هغوئ سامان تيار کړو | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بِجَهَازِهِمْ | جَعَلَ | السِّقَايَةَ | فِیْ رَحْلِ | اَخِيْهِ | ثُمَّ اَذَّنَ | |
| سامان دسفرد هغوئ | نو کيښودو هغهٔ | الوښې د څښلو | په بار کښې | درور خپل | بيا اواز اوکړو | |
| نو خپله پياله ئې د خپل سکه رور په سامان کښې کيښوده | | | | بيا يو آواز کونکي آواز اوکړو | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مُؤَذِّنٌ | اَيَّتُهَا | الْعِيْرُ | اِنَّكُمْ | لَسٰرِقُوْنَ ﴿۷۰﴾ | قَالُوْا |
| يو آواز کونکي | ائې | دقافلې خلقو | بيشکه تاسو | خامخا غلهٔ يئ | اووئيل هغوئ |
| چې ائې د قافلې خلقو تاسو غلهٔ يئ ........................ | | | | | هغوئ اووئيل |

| وَاَقۡبَلُوۡا | عَلَيۡهِمۡ | مَّا | ذَا تَفۡقِدُوۡنَ۝ | قَالُوۡا | نَفۡقِدُ |
|---|---|---|---|---|---|
| اومخونه ني راواړول | په هغوئ | څه څيز | ورك شوي دي ستاسونه | اووئيل هغوئ | اورکه ده زمونږ نه |
| او مخونه ني ورپسې راواړول \| ستاسونه څه ورک شوی دی \| ..........هغوئ اووئيل زمونږ نه د | | | | | |

| صُوَاعَ | الۡمَلِكِ | وَلِمَنۡ | جَآءَ بِهٖ | حِمۡلُ | بَعِيۡرٍ | وَّاَنَا | بِهٖ | زَعِيۡمٌ۝ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| پيمانه | د بادشاه | اودې دپاره دهغه چا | چې راتې ورپوهغه | بار | د اوښ | او زۀ | په دې | ذمه واريم |
| بادشاه پيمانه اورکه شوي ده \| اوچا چې راپيدا کړه هغهٔ د پاره د اوښ يو بار(غله) انعام دې\|او زۀ ددې ذمه واريم | | | | | | | | |

**قوله تعالى:: جَعَلَ السِّقَايَةَ فِيۡ رَحۡلِ اَخِيۡهِ**

**د رور د ايساړولو تدبير:-** کله چه هغه خپلو رونړوته د عادت مطابق د غلې يو يو اوښ ورکړو اود هغې سامانونه ني اوتړل نو خپلو هوښيارو نوکرانو ته په پټه اشاره اوکړه چه د چاندئی شاهي جام د بنيامين په سامان کښې پټ کړنی. بعضو وئيلی چه دا جام د سرو زرو وو. په دې به اوبه څکلې شوې او هم په دې به غله ورکولې شوه. ابن عباس ﷺ فرمائي چه سپينو زرو وه چه دوئ هغې کښې اوبه څکلې . هم داسې پياله حضرت عباس ﷺ سره هم وه په جاهليت کښې.دحضرت يوسف ﷺ نوکرانو هغه جام د هغه د رور بنيامين په بارکښې کيخوده،کله چه دوی روان شو نودروستونه د يو آواز کونکي آواز راتلو چه اې د قافلې خلقو تاسوغله ني. هغوی آواز واوريدو نو اودريدل، اخوا متوجه شو او تپوس ني اوکړو چه ستاسو څه څيز اورك شوې دې. جواب ملاوشو شاهي پيمانه کوم سره چه غله ناپ کيدله. واورنی شاهي اعلان دې چه د دغې پيدا کونکي د پاره يو اوښ غله ده او زه ستاسو ضامن يم.

| قَالُوۡا | تَاللّٰهِ | لَقَدۡ عَلِمۡتُمۡ | مَّا جِئۡنَا | لِنُفۡسِدَ |
|---|---|---|---|---|
| اووئيل هغوئ | قسم په الله | په تحقيق سره تاسو ته ښهٔ معلومه ده | چې نهٔ يوراغلی مونږ | دپاره ددې چې فساد اوکړو |
| هغوئ اووئيل چې په الله ﷻ قسم تاسو ته معلومه ده \| چې مونږ دې وطن ته د فساد دپاره نهٔ يوراغلی | | | | |

| فِي الۡاَرۡضِ | وَمَا كُنَّا | سٰرِقِيۡنَ۝ | قَالُوۡا | فَمَا جَزَآؤُهٗ | اِنۡ كُنۡتُمۡ |
|---|---|---|---|---|---|
| په زمکه کښې | اونهٔ يو مونږ | غلاکونکی | اووئيل هغوئ | نوڅه ده سزا د هغه | که وئ تاسو |
| اونهٔ مونږ غلهٔ يو\|.................. هغوئ اووئيل که چرې تاسو دروغژن ثابت شوئ \| نوبيا به د هغه | | | | | |

| كٰذِبِيۡنَ۝ | قَالُوۡا | جَزَآؤُهٗ | مَنۡ | وُّجِدَ | فِيۡ رَحۡلِهٖ |
|---|---|---|---|---|---|
| دروغژن | اووئيل هغوئ | سزا د هغهٔ(دا ده) | هغه څوك | چې بيامونډې شو څيز | په بار د هغه کښې |
| څه سزا وی \| هغوئ اووئيل چې د هغهٔ سزا دا ده \| چې د چا په سامان کښې پيمانه راوخته نوهم هغهٔ | | | | | |

| فَهُوَ | جَزَآؤُهٗ ؕ | كَذٰلِكَ | نَجۡزِي | الظّٰلِمِيۡنَ۝ | فَبَدَاَ |
|---|---|---|---|---|---|
| نوهم هغه(سړی) | د دې بدله ده | دارنګې | بدله ورکوو مونږ | ظالمانوته | نو شروع اوکړه يوسف |
| دې د غلا په بدله کښې ايسارکړې شي\|مونږ ظالمانو ته هم دغه شان سزا ورکووا نودخپل رور | | | | | |

| بِاَوۡعِيَتِهِمۡ | قَبۡلَ | وِعَآءِ | اَخِيۡهِ | ثُمَّ | اسۡتَخۡرَجَهَا | مِنۡ وِّعَآءِ | اَخِيۡهِ ؕ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| په بارونو د هغوئ | مخکښې | د بار | د رور خپل نه | بيا | راوويستله هغه پياله | د بارنه | د رور خپل |
| دبورئ نه وړاندې ئې د هغوئ د بورئ(تلاشي) شروع کړه ابيائې دخپل (سکه)رور دبورئ نه(پيالئ) راوښکله | | | | | | | |

كَذٰلِكَ كِدْنَا لِيُوسُفَ ؕ مَا كَانَ لِيَأْخُذَ اَخَاهُ فِىْ دِيْنِ الْمَلِكِ

دارنګې | تدبیر اوښودو مونږ | یوسف ته | نه وو هغه | چې نیولې ئې وې | رورخپل | په دین کښې د بادشاه

دغه شان مونږ یوسف علیه السلام د پاره تدبیر اوکړو | هغه خپل رور د بادشاه (مصر) په قانون کښې اخستې نه شو

اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ ؕ نَرْفَعُ دَرَجٰتٍ مَّنْ نَّشَآءُ ؕ وَفَوْقَ

بغیر ددې نه | چې اوغواړی | الله | پورته کوؤ مونږ | درجې | دهغه چا | چې اوغواړو مونږ | او د پاسه

مګر دا چې الله ﷻ ته منظوره وه | مونږ چې د چا درجې اوچتول اوغواړو اوچتې ئې کړو | او د هر

كُلِّ ذِىْ عِلْمٍ عَلِيْمٌ ۝

د هر خاوند دعلم | اوچت علم والا شته |

عالم د پاسه بل لوئې عالم شته |

قوله تعالى:: كَذٰلِكَ نَجْزِى الظّٰلِمِيْنَ ۝

**د یوسف علیه السلام درونړو په نزد د غل سزا:-** پخپل ځان دغلا تهمت اوریدو سره د یوسف علیه السلام د رونړو غوږونه اودریدل او ونې وئیل چه تاسو مونږ پیژنئی، زمونږ د عادتونو او خصلتونونه خبرشوی ئې. مونږ داسې نه یو چه څه فساد اوچت کړو او نه داسې یو چه غلاګانې کوو. شاهی نوکرانو وئیل چه ښه ده که جام او پیمانه پتول په تاسو کښې وو او تاسو دروغژن شوئی نو د دې سزا څه پکار ده. ونې فرمائیل چه د دین ابراهیمی مطابق د هغه سزا داده چه هغه به هم هغه سړی ته حواله کړې شی د چامال چه ئې پټ کړې وی.زمونږ د شریعت هم دغه فیصله ده. اوس د حضرت یوسف علیه السلام مطلب پوره شو، هغوی حکم ورکړو چه د دوی تلاشی واخلئی نو اول ئې د نورو رونړو سامان اولټولو حالانکه معلومه وه چه د هغوی بارونه خالی دی خودا صرف د دې دپاره چه دوی ته او یا نوروخلقو ته شك اونه شی. هغه دا کار اوکړو چه کله د رونړو تلاشی اوشوه او جام ملاؤ نه شو نو د بنیامین د سامان تلاشی شروع کړه. د هغه په سامان کښې خو ئې پخپله کیخودې وو نو خود به د هغه د سامان نه راوتلو. حکم ئې اوکړو چه دې حصارکړئی دا ووهغه ترکیب چه الله ﷻ په خپل حکمت اودیوسف علیه السلام اود هغه د رور بنیامین د مصلحت دپاره حضرت یوسف صدیق علیه السلام ته خودلې ووځکه چه د مصر دبادشاهی قانون مطابق سره د دې چه هغه غلاکړې وی یوسف علیه السلام ځان سره نه شوحصارولې.هغوی ته معلومه وه چه د شریعت ابراهیمی فیصله دغل مطابق څه ده ځکه ئې په رونړو باندې اول دا وئیلې وو.دچا درجې چه الله ﷻ اوچتول غواړی نو هغه اوچتوی لکه چه دالله ﷻ فرمان دې. په تاسوکښې به د ایماندارو درجې مونږ اوچتوو. د هر عالم د پاسه بل عالم هم شته تردې چه الله ﷻ د ټولو نه لوئ عالم دې. هم د هغه نه د علم ابتداء ده اوهم د هغه طرف ته د علم انتها ده. دعبدالله رضی الله عنه قراءت کښې ﴿ فوق کل عالم علیم﴾ دی.

قَالُوْٓا اِنْ يَّسْرِقْ فَقَدْ سَرَقَ

| اووئیل هغوئ | که غلا کوی دی | نو په تحقیق سره | غلا کړې ده

| هغوئ اووئیل که (نن) دهٔ غلا اوکړه | نو پخوا ددهٔ

اَخٌ لَّهٗ مِنْ قَبْلُ ۚ فَاَسَرَّهَا يُوْسُفُ فِىْ نَفْسِهٖ وَلَمْ يُبْدِهَا

روردهٔ | مخکښې د دې نه | نو پټه اوساتله دا خبره | یوسف | په زړهٔ خپل کښې | اوښکاره ئې نهٔ کړه هغه

سکه رور هم غلا کړې وه | نو یوسف دا خبره په خپل زړهٔ کښې واچوله | او هغوئ ته ئې ښکاره نهٔ کړه

| لَهُمْ | قَالَ | اَنْتُمْ | شَرٌّ | مَّكَانًا | وَاللّٰهُ | اَعْلَمُ | بِمَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هغوئ ته | وې وئيل | تاسو | ډير بد يئ | په لحاظ دمرتبې سره | او الله | ښهٔ پوهه دې | په هغه الزام |
| ورته ئې اووئيل چې تاسو ډير خراب خلق يئ او خهٔ چې تاسو بيانوئ الله ﷻ په هغې | | | | | | | |
| تَصِفُوْنَ۝ | | | | | | | |
| چې تاسوئې بيانوئ | | | | | | | |
| ښهٔ پوهه دې | | | | | | | |

قوله تعالى:: قَالُوْٓا اِنْ يَّسْرِقْ فَقَدْ سَرَقَ اَخٌ لَّهٗ مِنْ قَبْلُ

**د يوسف ؑ طرف ته د غلا دنسبت حقيقت**:-د رور دسامان نه جام راوتلو سره ئې خبره جوړه کړه گورنې ده غلا کړې وه اوهم دا څه چه د ده رور يوسف هم يو خل ددې نه اول غلا کړې وه. واقعه دا وه چه د خپل نيکه بت ئې پټ راوچت کړې وو او هغه ئې مات کړې وو.دا هم روايت دې چه د حضرت يعقوب ؑ يوه مشره خور وه چا سره چه د خپل پلار اسحاق ؑ يو ملاټ وو کوم چه به د خاندان مشر سره وو. حضرت يوسف ؑ پيدا کيدو سره د خپلې دې ترور په پالنه کښې وو. د هغې يوسف ؑ سره ډيره مينه وه. کله چه هغه لږ شان لوئ شو نو حضرت يعقوب ؑ هغه بوتلل غوښتل. خورته ئې درخواست اوکړو ولې خورئې دا جدائی ناقابل برداشت بيانولوسره انکار اوکړو. بل طرف ته د هغه د پلار حضرت يعقوب ؑ د شوق هم انتها وه چه کلك شو،نو آخرئې خور اوفرمائيل ښه ده يو څوورځې پريږده نو بيا ئې بوزه. هم په دې وخت کښې هغوی دغه کمربند پټه دحضرت يوسف ؑ د کپړو لاندې پټ کړو، بيا ئې لټون شروع کړو ټول کور ئې اولټولو خو ملاؤ نشو.شورجورشو آخر فيصله اوشوه چه چه په کور کښې څوك دی دهغوی تلاشی واخلئی چه چا سره هم وی نو راوبه خی. آخر دحضرت يوسف ؑ تلاشی واخستی شوه، هم د هغه نه راووتلو.حضرت يعقوب ؑ ته خبر ورکړې شواو د ملت ابراهيمی قانون مطابق هغه خپلې تروړته حواله کړې شواو ترور ئې دغه شان خپل شوق پوره کړو. ترمرګه پورې حضرت يوسف ؑ پرينخودو. هم د دې خبرې پيغور نن رونړه ورکوی. د څه په جواب کښې چه حضرت يوسف ؑ غلې غوندې په خپل زړه کښې اووئيل چه تاسو ډير خراب خلق ئې، د هغه د رورو د غلا حال الله ﷻ ته ښه معلوم دې.

| قَالُوْا | يٰٓاَيُّهَا الْعَزِيْزُ | اِنَّ | لَهٗٓ | اَبًا | شَيْخًا كَبِيْرًا | فَخُذْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اووئيل هغوئ | ائې عزيزه | بيشکه | د دهٔ | يو پلاردې | بوډا | ډيرا نو اونيسه |
| هغوئ اووئيل ائې عزيز بيشکه ددهٔ پلار ډير بوډا دې نو د دهٔ په ځائې مونږ کښې يو | | | | | | |

| اَحَدَنَا | مَكَانَهٗ | اِنَّا | نَرٰىكَ | مِنَ الْمُحْسِنِيْنَ۝ | قَالَ |
|---|---|---|---|---|---|
| يو زمونږنه | په ځائې ددهٔ | بيشکه | مونږ وينو تا | د احسان کونکونه | اووئيل يوسف |
| کس اونيسه مونږ وينو ګورو چې تهٔ ډير ښهٔ سړې يې ...........هغهٔ اووئيل | | | | | |

| مَعَاذَ اللّٰهِ | اَنْ نَّاْخُذَ | اِلَّا | مَنْ | وَّجَدْنَا | مَتَاعَنَا |
|---|---|---|---|---|---|
| پناه غواړم په الله سره | چې اونيسم زهٔ | مگر | هغه څوك | چې موندلې دې مونږ | سامان زمونږ |
| چې په الله ﷻ سره د دې خبرې نه پناه غواړم چې چا سره مونږ خپل څيز موندلې دې د هغه نه سوا بل څوك | | | | | |

عِنْدَهٗۤ ۙ اِنَّاۤ اِذًا لَّظٰلِمُوْنَ ۝

دهغه سره | بیشکه مونږ | به یو بیا | خامخا ظالمان |

اونیسو | په دغه وخت کښې خو به مونږ په ظالمانو کښې شمیر شو |

قوله تعالیٰ: قَالَ مَعَاذَ اللّٰهِ اَنْ نَّاْخُذَ اِلَّا مَنْ وَّجَدْنَا مَتَاعَنَا عِنْدَهٗۤ ۙ

**د بنیامین قید اود رونړو منت زاری:-** کله چه دبنیامین نه شاهی مال راووتلو او د هغه د خپل اقرار مطابق هغه شاهی قیدی اوګرځیدو نو اوس هغوی خفه شو. عزیز مصر ته ئې سفارش اوکړو او په هغه ئې د رحم کولو د پاره اووئیل چه د ده پلار ته دې ډیر ګران دې هغه ضعیف او کمزورې سړې دې. د هغه یو سکه رور هم اول اورك شوې دې. د څه په وجه چه هغه د اول نه خفه دې، اوس که هغه دا واوری نو ویره ده چه ژوندې پاتې نه شی. تاسو زمونږ نه د ده په ځائې بل خان سره حصار کړنی اودې پریږدنی. تاسو ډیر احسان کونکې ئې زمونږ دومره عرض قبول کړئې. حضرت یوسف ﷺ جواب ورکړو چه دا د زړه سختوالې او ظلم څنګه کیدې شی چه کار دې یو اوکړی اوسزا دې بل اوخوری. بادشاه د ناکرده ګناه سزا ورکول او ګناهګار پریخودل دا خو ښکاره بې انصافی او بدسلوکی ده.

فَلَمَّا اسْتَيْئَسُوْا مِنْهُ

| نوهر کله چې | نا امیده شو هغوی | د هغهٔ نه

انو کله چې دوئ دهغه (یوسف ﷺ)

خَلَصُوْا نَجِيًّا ؕ قَالَ كَبِيْرُهُمْ اَلَمْ تَعْلَمُوْۤا اَنَّ

نوجدا شو | دپاره د پټې مشورې | اووئیل | مشر د هغوئ | آیا تاسوته معلومه نهٔ ده | چې بیشکه

نه مایوسه شو | نود مشورې دپاره خان له شو | په دوئ کښې مشر اووئیل | چې آیا تاسو ته معلومه نهٔ ده چې

اَبَاكُمْ قَدْ اَخَذَ عَلَيْكُمْ مَّوْثِقًا مِّنَ اللّٰهِ وَمِنْ قَبْلُ مَا

پلارستاسو | اخستی ده | ستاسونه | وعده محکمه | د الله په نوم | او مخکښې ددې نه | هغه

پلار درنه په قسمونو پوخ لوظ اخستې وو | اود دې نه وړاندې هم تاسو د یوسف ﷺ په

فَرَّطْتُّمْ فِيْ يُوْسُفَ ۚ فَلَنْ اَبْرَحَ الْاَرْضَ حَتّٰى

چې زیاتې کړې وۀ تاسو | په حق دیوسف کښې | نوهرګز نهٔ خوزیږم زهٔ | ددې زمکې نه | ترهغې پورې

حق کښې قصور کړې دې | نو زهٔ خو دا ملک نهٔ پریږدم | ترڅو چې پلار راته

يَاْذَنَ لِيْۤ اَبِيْۤ اَوْ يَحْكُمَ اللّٰهُ لِيْ ۚ وَهُوَ خَيْرُ

چې اجازت راکړی | ماته | پلار زما | یا فیصله اوکړی | الله | زما په حقله | او هغهٔ | بهتره

اجازت رانکړی | یا الله ﷻ زما په حق کښې څه فیصله اونهٔ کړی | .......... ..........او هم هغهٔ

الْحٰكِمِيْنَ ۝ اِرْجِعُوْۤا اِلٰۤى اَبِيْكُمْ فَقُوْلُوْا يٰۤاَبَانَاۤ اِنَّ

د فیصله کونکونه دې | واپس لاړشئ | پلارخپل ته | نواووایئ | ائې پلاره زمونږ | بیشکه

ډیر ښهٔ فیصله کونکې دې | تاسو خپل پلارته واپس لاړ شئ | نو ورته وایئ چې ائې باباجانه! ستاسو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ابْنَكَ | سَرَقَ | وَمَا شَهِدْنَآ | اِلَّا | بِمَا عَلِمْنَا | وَمَا كُنَّا |

چې خوئی ستا | غلا اوکړه | او مونږ ګواهي ورنۀ کړه | مګر | څه چې مونږ ته معلوم وو | او نۀ وو مونږ

خوئی غلا کړې ده | اومونږ د خپل علم مطابق ګواهي ورکړې ده | او مونږ د غيبو

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لِلْغَيْبِ | حٰفِظِيْنَ۞ | وَاسْئَلِ | الْقَرْيَةَ | الَّتِيْ | كُنَّا | فِيْهَا | وَالْعِيْرَ |

غيبو د پاره | حفاظت کونکي | اوتپوس اوکړه | د کلی | هغې نه | چې وو مونږ | په هغې کښې | او د قافلې

هيڅ خبرنۀ وو | اوپه کوم کلي کښې چې مونږ ديره وو | د هغه خائې د خلقو نه تپوس اوکړه | او د هغه قافلې د

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الَّتِيْٓ | اَقْبَلْنَا | فِيْهَا ط | وَاِنَّا | لَصٰدِقُوْنَ۞ |

هغې نه | چې راغلو مونږ | په هغې کښې | اوبيشکه مونږ | خامخا ريښتيني يو

خلقو نه تپوس اوکړه | چې مونږ ورسره (په ملګرتيا کښې) راغلي يو | اومونږ بالکل ريښتني يو |

**قوله تعالى:: فَلَمَّا اسْتَيْئَسُوْا مِنْهُ خَلَصُوْا نَجِيًّا ط**

**ديوسف ﷺ دورونړو دمايوسئ نه پس مشوره.-** کله چه دحضرت يوسف ﷺ ته د خپل رور د خلاصولو نه مايوسه شو او هغوی دې خبرې په کش مکش کښې واچول چه مونږ خو پلارسره ډير کلک عهدو پيمان کړې راغلي يو چه بنيامين به تاله رارسوو، او دلته نه خلاصيدې نشي الزام ثابت شو. هم زمونږ د خپل اقرار په وجه هغه شاهي قيدی اوګرځيدو. او وائي چه څه به کوو. ۍ خپل مينځ په دې مشوره کښې مشر رور په دې الفاظوسره خپل خيالات ښکاره کړل چه تاسو ته ښه پته ده چه د دومره کلکې وعدې نه پس مونږ د پلار نه دلته راغلي يو اوس خو هغه سره د مخ لګولو قابل نه يو اونه دا زمونږ د وس کار دې چه بنيامين څنګه د شاهي قيد نه آزاد کړو او بيا د دې ورانديې مونږ خپل اولنې قصور هم پښيمانه کوی چه دحضرت يوسف ﷺ باره کښې اول زمونږ دلاسه شوې دې. نو اوس خو زه هم دلته پاتې کيږم چه يا خو مې پلار زما قصور معاف کړې او خپل خان ته دراتلواجازت راکړی او يا الله ﷻ ماته څه فيصله راوښائي چه زه خو په جنګ جګړه سره خپل رور بوځم اويا الله ﷻ څه بل څه صورت جوړ کړي. وائي چه د هغه نوم روبيل وو يا يهودا وو، هم دغه وو چه کله حضرت يوسف ﷺ خپلو رونړو قتل کولو نو ده منع کړې وو. اوس دې خپلو نورو رونړوته مشوره ورکوی چه تاسو بابا جان له لاړشئ هغوی د حقيقت حال نه خبرکړئ. هغه ته اووائې چه مونږ ته څه پته وه چه دې به غلاکوی، د غلا مال هغه سره موجود دې. زمونږ نه خو نې د مسئلې تپوس اوکړو نو مونږ صورت بيان کړو. که ستاسو زمونږ په خبره يقين نه وی نو تاسود اهل مصر نه پوښتنه اوکړئ يا چه کومې قافلې سره مونږ راغلي يو د هغوی نه تپوس اوکړئ چه مونږ په صداقت امانت او حفاظت کښې هيڅ کوتاهي نه ده کړې او مونږ چه څه عرض کوو هغه بالکل حقيقت دې.

| | |
|---|---|
| قَالَ | بَلْ |

| اوونيل يعقوب | بلکه

| اومونږ بالکل ريښتني يو | يعقوب اوونيل

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| سَوَّلَتْ | لَكُمْ | اَنْفُسُكُمْ | اَمْرًا ط | فَصَبْرٌ جَمِيْلٌ ط | عَسَى | اللّٰهُ | اَنْ يَّاْتِيَنِيْ |

اسان کړو | ستاسو دپاره | نفسونو ستاسو | يو کارا | نو صبر | بهتره | اميد دې | چې الله | راولي ماته

بلکه دا تاسو ته خپلو نفسونو يوه خبره ښائسته کړې ده | نو هم صبر ډير ښۀ دې | اکيديشي چې الله ﷻ دا ټول

بِهِمْ جَمِيعًا إِنَّهُ هُوَ الْعَلِيمُ الْحَكِيمُ ۝ وَتَوَلَّى عَنْهُمْ

هغوئ | ټول | بیشکه هغهٔ | هم هغهٔ | ښهٔ پوهه دي | ښهٔ حکمت والا دي | او واړولو ئې مخ | د هغوئ نه

مانه واپس راولي | هغهٔ په هرڅه پوهه دي | دحکمت خاوند دي | اویعقوب ﷺ دهغوی نه مخ واړولو

وَقَالَ يَا أَسَفَى عَلَى يُوسُفَ وَابْيَضَّتْ عَيْنَاهُ مِنَ الْحُزْنِ فَهُوَ

اووې ونیل | ائې افسوسه | په یوسف باندې | او سپینې شوې | دواړه سترګې د هغهٔ | دغم نه | پس هغهٔ

اووې ونیل چې ائې افسوسه په یوسف باندې | اود غم نه (په ژړا ژړا) ئې سترګې سپینې شوې اوهغهٔ به

كَظِيمٌ ۝ قَالُوا تَاللَّهِ تَفْتَؤُا تَذْكُرُ يُوسُفَ حَتَّى

سخت غمګین وو | اووئیل هغوئ | قسم دې په الله | چې تهٔ همیشه | یادوې | یوسف | تردې پورې

خفه دلګیر وو | خامنو ئې اووئیل | په الله ﷻ قسم تهٔ همیشه یوسف ﷺ یادوې | ............تردې چې

تَكُونَ حَرَضًا أَوْ تَكُونَ مِنَ الْهَالِكِينَ ۝ قَالَ إِنَّمَا

چې شې به تهٔ | ناجوړه ډیر | یا شې به تهٔ | د هلاکیدونکو نه | اووئیل یعقوب | بیشکه

خان به وریسې رنځور کړې | یا به (د ډیرغمه) مړ شې | ......هغهٔ (یعقوب ﷺ) اووئیل چې زهٔ خو صرف

أَشْكُو بَثِّي وَحُزْنِي إِلَى اللَّهِ وَأَعْلَمُ مِنَ اللَّهِ مَا

زهٔ فریاد کوم | د غم خپل | او د خفګان خپل | الله ته | او پوهیږم زهٔ | د طرفه د الله نه | په هغه څه

الله ﷻ ته خپل غم اوخپل خفګان بیانوم | ..او د الله ﷻ د طرفنه په هغه څه پوهیږم

لَا تَعْلَمُونَ ۝

چې تاسو پرې نهٔ پوهیږئ

چې تاسو پرې نهٔ پوهیږئ

قوله تعالى:: قَالَ إِنَّمَا أَشْكُو بَثِّي وَحُزْنِي إِلَى اللَّهِ

**د یعقوب ﷺ غم:-** د رونړو د خُلې دا خبر اوریدو سره حضرت یعقوب ﷺ هم هغه اوفرمائیل چه دې نه وړاندې ئې هغه وخت فرمائیلي ووکله چه هغوی د حضرت یوسف ﷺ په وینورنګ قمیص پیش کړې وو او د خان نه ئې قصه اوروله وه چه هم صبر بهتر دې، هغوی دا ګنړل چه هم د دې پشان هم دا قصه هم دوی د خان نه جوړه کړې ده. خامنوته ئې اوفرمائیل چه اوس د الله ﷻ نه ښکاره امید دې چه ډیر ممکن دی الله ﷻ به ډیر زر ما سره خپل دریواړه بچې ملاوکړی یعنی حضرت یوسف ﷺ بنیامین او مشر خوئ روبیل چه کوم په مصرکښې حصار شوې دې په دې امیدچه بنیامین به پټ راوباسی یا ممکن دی چه الله ﷻ پخپله حکم اوکړی او دې د هغه په رضامندئی سره واپس شی ځکه چه الله ﷻ خو علیم دې. زما په حال ښه خبر دې. حکیم دې د هغه قضا او قدر اود هغه هریوکار د حکمت نه خالی نه دی.اوس دهغه دې نوی غم هغه زوړ غم هم تازه کړو اودحضرت یوسف ﷺیادپه زړه کښې تپونه وحل.

**په غم کښې انا لله وئیل ددې امت خصوصیت دې::** حضرت سعیدبن جبیر فرمائی ﴿إِنَّا لِلَّهِ﴾ د لوستلو هدایت صرف دې امت شوې دې د دې نعمت نه وړاندینی امتونه سره د خپلو انبیاؤ محروم وو. ګورنې حضرت یعقوب ﷺ هم په داسې موقع باندې ﴿يَا أَسَفَى عَلَى يُوسُفَ﴾ وائی.دهغوی د سترګو نظر تلې وو غم هغوی نابینا کړی وو ،ژبه ئې خاموش شوې وه، په مخلوق کښې د چا نه ګیله او شکایت نه کولو خفه

او پریشانه به وو. په ابن ابی حاتم کښي دي چه کله حضرت داود ﷺ د الله ﷻ په دربار کښي عرض اوکړو چه خلق تاته دا وائی او دعاګواري چه اې دحضرت ابراهیم، حضرت اسحاق او حضرت یعقوب علیهم السلام ربه ته داسې اوکړې، نو په دې دریوارو نومونوکښې زما نوم هم شامل کړه. جواب ملاوشو اې داود ﷺ! حضرت ابراهیم ﷺ په اورکښې اوغورزولې شو صبر ئې اوکړو خو ستا اوسه پورې داسې ازمینبت نه دې شوې. حضرت اسحاق ﷺ پخپله خپله قربانی منظورکړه او خپله مرنې پریکړه. په تاباندې داخبره هم نه ده راغلې. د یعقوب ﷺ نه ما د هغه د زړه ټکړه جدا کړه هغه هم صبر اوکړو،تاسره داسې واقعه هم نه ده شوې. دا روایت مرسل دې په دې کښې نکارت هم دې. په دې کښې بیان شوې دې چه ذبیح الله حضرت اسحاق ﷺ دې

**ذبیح الله اسماعیل ﷺ وو اسحاق ﷺ نه وو:** :خو صحیح خبره دا ده چه حضرت اسماعیل ﷺ وو.د دې روایت راوی علي بن زیدبن جدعان اکثر منکر او غریب روایتونه بیانوی.والله اعلم. ډیر ممکن دی چه احنف بن قیس رحمه الله دا روایت د بنی اسرائیل نه اخستې دې لکه چه د کعب، وهب وغیره نه، والله اعلم.

**اسرائیلی روایت:** : د بنی اسرائیل په روایتونوکښې دا هم دی چه حضرت یعقوب ﷺ حضرت یوسف ﷺ ته په دې موقعه باندې چه بنیامین د هغه په قیدکښې وو یو خط لیکلې وو په کوم کښې چه د رحم کولو دپاره لیکلې وو چه مونږ مصیبت وهلی خلق یو، زما نیکه حضرت ابراهیم ﷺ په اور کښې اچولې شوې وو، زما پلار حضرت اسحاق ﷺ په ذبح سره ازمینبت کړې شوې وو. پخپله د یوسف ﷺ په فراق کښې اخته یم. خو دا روایت هم سنداً ثابت نه دی بچود پلار دې حالت ته په کتلو سره هغه پوهه کول شروع کړه چه باباجی ته خو هم په دې یاد کښې خپل خان ویلې کوې بلکه زمونږ دا ویره ده چه که تاسو په دې حال کښې نور یو څو ورځې پاتې شوې نو د خپل ژوند نه به لاس اووینځې. حضرت یعقوب ﷺ هغوی ته جواب ورکړو زه څو تاسو ته څه نه وایم زه خو خپل رب ته په خپلو غمونوکښې ژاړم اود هغه د ذات نه ډیر امیدوار یم، هغه د ښیګړې خاوند دې. ماته د یوسف ﷺ خوب یاد دې چه د هغې تعبیر به ښکاره کیږی.

**دیعقوب ﷺ دیومخلص دوست پوښتنه:** په ابن ابی حاتم کښې دی چه د حضرت یعقوب ﷺ یو مخلص دوست یوځل تپوس اوکړوچه ستاسو دا بینائی څنګه تلې او ستا دا ملا څنګه راټیټه شوې. هغوی اوفرمائیل چه په یوسف ﷺ په ژړا ژړا مې نظر تلې اود بنیامین جدائې مې ملا ماته کړه. په هغه وخت حضرت جبرائیل ﷺ راغلو ونې فرمائیل الله ﷻ تاته د سلام نه پس فرمائی چه زما ګیلې نوروخلقو ته په کولو شرمیږې نه؟ حضرت یعقوب ﷺ هغه وخت اوفرمائیل چه زما پریشانی او غم شکایت هم د الله ﷻ په وړاندې ده. حضرت جبرائیل ﷺ اوفرمائیل چه ستا شکایت هم د الله ﷻ په علم کښې دې. دا حدیث هم غریب دې او په دې کښې هم نکارت دې.

| يٰبَنِيَّ | اذْهَبُوْا | فَتَحَسَّسُوْا | مِنْ يُّوْسُفَ | وَاَخِيْهِ |
|---|---|---|---|---|
| اې خامنو زما | لاړ شئ | پس تلاش اوکړئ | د یوسف | او د رور د هغه |
| اود هغه د رور لټون اوکړئ ﷺ. | | اې خامنو! څئ لاړشئ او د یوسف | | |
| وَلَا تَايْـَٔسُوْا | مِنْ رَّوْحِ اللّٰهِ ۭ | اِنَّهٗ | لَا يَايْـَٔسُ | مِنْ رَّوْحِ اللّٰهِ |
| او مه ناامیده کیږئ | د رحمت د الله نه | بیشکه شان دادې | چې نه ناامیده کیږی | د رحمت د الله نه |
| د رحمت نه خو صرف کافران خلق ﷻ د رحمت نه مه ناامیده کیږئ | د الله ﷻ اودالله | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| إِلَّا | الْقَوْمُ الْكٰفِرُوْنَ۝ | فَلَمَّا | دَخَلُوْا | عَلَيْهِ | قَالُوْا | يٰۤاَيُّهَا الْعَزِيْزُ |
| مگر | قوم كافران | نو هر كله چې | ورننوتل | په هغه | نو وې وئيل | اې سرداره د اختيار خاوندہ |

ته ورغلل | نو وې وئيل چې اې عزيزہ ﷺ نا اميده كيږي | كله چې هغوئ (ورونړه) يوسف

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مَسَّنَا | وَاَهْلَنَا | الضُّرُّ | وَجِئْنَا | بِبِضَاعَةٍ | مُّزْجٰىةٍ | فَاَوْفِ |
| رسيدلې دې مونږ ته | او كور والو زمونږ ته | تكليف | او راوړې ده مونږ | سرمايه | معمولي | نو پوره راكړه |

مونږ ته او زمونږ د كور خلقو ته ډير تكليف رسيدلې دې | او مونږ څه لږه معمولي سرمايه راوړې ده | نو

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لَنَا | الْكَيْلَ | وَتَصَدَّقْ | عَلَيْنَا ط | اِنَّ اللّٰهَ | يَجْزِي | الْمُتَصَدِّقِيْنَ۝ |
| مونږ ته | پيمانه | او خيرات اوكړه | په مونږ باندې | بيشكه الله | جزا وركوي | خيرات وركونكو ته |

مونږ ته د غلې پوره پيمانه راكړه | او په مونږ خيرات اوكړه | بيشكه الله صدقه وركونكو ته بدله وركوي

**قوله تعالى: يٰبَنِيَّ اذْهَبُوْا فَتَحَسَّسُوْا مِنْ يُّوْسُفَ وَاَخِيْهِ**

**دحضرت يعقوب ﷺ حكم چه يوسف او بنيامين اولټوئي:** يعقوب ﷺ خپلو خامنوته حكم اوكړو چه تاسو اخوا ديخوا لاړشئ او حضرت يوسف ﷺ او بنيامين اولټوئي. په عربي كښې ﴿تَحَسَّسُ﴾ لفظ د ښيګړې لټولو د پاره وئيلې شوې دې. اود بدئي لټولو د پاره ﴿تَجَسَّسُ﴾ لفظ وئيلې كيږي.

**د الله ﷻ درحمت نه نااميده كيدل نه دي پكار::** ورسره فرماني چه د الله ﷻ د ذات نه مايوسه كيدل نه دي پكار. د هغه د رحمت نه هم هغه مايوسه كيږي د چا په زړونو كښې چه كفر وي. تاسو لټون مه بندوئ د الله ﷻ نه نيك اميد ساتئ او خپل كوشش جاري ساتئ. نو دا خلق بيا مصر ته لاړل. د حضرت يوسف ﷺ په درباركښې حاضر شو هلته ئې خپله مجبوري ښكاره كړه چه قحط كالئى زمونږ خاندان خراب كړې دې. مونږ سره هيڅ نشته په څه سره چه غله واخلو، اوس ردي، خراب ناقص او بې قيمته څه داسې باقي پاتې څيزونوسره تاله راغلي يو لكه چه دې ته هډو بدله نه شي وئيلې او نه څه قيمت جوړيږي خو زمونږ خواهش دې چه تاسو مونږ ته هم هغه راكړئى كوم چه په رښتيا صحيح او پوره قيمت باندې وركوئي. زمونږ بارونه ډك كړه او زمونږ كجاوې ډكې كړه، دحضرت ابن مسعود ﷺ په قراءت كښې ﴿فَاَوْفِ لَنَا الْكَيْلَ﴾ په بدله كښې ﴿فاوقرركابنا﴾ دې. يعنى زمونږ اوښان د غلې نه بار كړه او په مونږ باندې صدقه اوكړه. زمونږ رور خلاص كړه يا دا مطلب دې چه دا غله زمونږ د دې مال په بدله كښې نه بلكه د خيرات په توګه راكړه. د حضرت سفيان بن عيينه ﷫ نه تپوس كيږي چه زمونږ د نبي نه اول هم په يو نبي باندې صدقه حرامه شوې ده؟ نو هغوى هم دا آيت لوستلو سره استدلال اوكړو چه نه دې شوې. دمجاهد نه سوال اوشو چه آيا د يوسړي په خپله دعا كښې دا وئيل مكروه دي چه يا الله په ما باندې صدقه اوكړه وئي فرمائيل چه او ځكه چه صدقه خو هغه كوي چه د ثواب طالب وي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | هَلْ عَلِمْتُمْ | مَّا | فَعَلْتُمْ | بِيُوْسُفَ | وَاَخِيْهِ | |
| اووئيل يوسف | ايا علم شته تاسو ته | په هغه كار | چې كړې وو تاسو | په يوسف باندې | او په وررور د هغهٔ | |

يوسف ﷺ تپوس اوكړو | چې ايا تاسو ته معلومه ده | چې تاسو د يوسف او د هغهٔ وررور سره څه كړي وو.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اِذْ | اَنْتُمْ | جٰهِلُوْنَ۝ | قَالُوْۤا | ءَاِنَّكَ | لَاَنْتَ | يُوْسُفُ ط | قَالَ |
| كلهِ چې | تاسو | ناپوهه وئ | اووئيل هغوئ | ايا ولې ته | خامخا هم ته | يوسف ئې څه | اووئيل هغهٔ |

كوم وخت كښې چه تاسو نهٔ پوهيدلئ | هغوئ اووئيل چې ايا هم ته يوسف ﷺ يې | هغهٔ اووئيل چې

| |
|---|
| أَنَا يُوسُفُ وَهٰذَآ أَخِي قَدْ مَنَّ اللّٰهُ عَلَيْنَا إِنَّهُ مَنْ |
| زه \| یوسف یم \| او دا \| رور زمادي\| احسان اوکړو\| الله \| په مونږ باندي\| بیشکه حقیقت دادي\| هغه څوك |
| هو! هم زه یوسف ﷺ یم \| اودا زما ورور دي \| په مونږ باندي الله ﷻ احسان کړي دي \| یقینا |
| يَتَّقِ وَيَصْبِرْ فَإِنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ ﴿٩٠﴾ قَالُوا |
| چي اوویریږي\| اوصبراوکړي\| نوبیشکه\| الله\| نه ضائع کوي\| اجر د نیکانو خلقو\| اوونیل هغوئ |
| څوک چي (د الله نه) ویریږي \| اوصبر کوي \| نوبیشکه الله د (داسې) نیکانو بدله نه ضائع کوي هغوئ اوونیل |
| تَاللّٰهِ لَقَدْ آثَرَكَ اللّٰهُ عَلَيْنَا وَإِنْ كُنَّا لَخَاطِئِينَ ﴿٩١﴾ |
| قسم دي په الله\| خامخا بیشکه\| غوره کړي ته\| الله\| په مونږ باندي\| اوبیشکه\| وو مونږ\| خامخا خطاکار |
| په الله ﷻ قسم \| الله ﷻ تا ته په مونږ باندي فضیلت درکړي دي \| او بیشکه هم مونږ خطاکار یو |
| قَالَ لَا تَثْرِيبَ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ يَغْفِرُ اللّٰهُ لَكُمْ وَهُوَ أَرْحَمُ |
| اوونیل یوسف\| نشته سزا \| په تاسو\| نن ورځ\| او دي ببښي\| الله\| تاسو\| او هغهٔ \| زیات رحم کونکي دي |
| یوسف ﷺ ورته اوونیل \| چي په تاسو هیڅ سزا نشته \| الله ﷻ دي تاسو معاف کړي \| اوهغهٔ ټولو نه زیات |
| الرَّاحِمِينَ ﴿٩٢﴾ |
| درحم کونکونه \| |
| مهربانه دي |

قوله تعالى:: قَالَ هَلْ عَلِمْتُمْ مَا فَعَلْتُمْ بِيُوسُفَ وَأَخِيهِ

**د رونړو حضرت یوسف ﷺ سره دریم ملاقات:** کله چه رونړه حضرت یوسف ﷺ له په دې عاجزنی او بې بسنی سره اورسیدل اوخپل ټول تکلیفونه ئې بیان کړل. دخپل پلار اوکوردخلقو مصیبتونه ئې بیان کړل نود حضرت یوسف ﷺ زړه راډك شو او ځان ئې قابونه کړو اودسر نه ئې تاج راکوز کړو او رونړو ته ئې اوونیل چه تاسوته خپلې هغه ناکردې یادی هم دی چه تاسو یوسف سره څه کړي؟ اود هغه رور سره مو څه کړي؟ هغه خو ستاسو جهالت وو.

**هرګناهګار جاهل وی::** په دې وجه بعض سلف فرمائی چه د الله ﷻ هر ګناهګار جاهل دې. قرآن کښې ارشاد دې ﴿ ثُمَّ إِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِينَ عَمِلُوا السُّوءَ بِجَهَالَةٍ ﴾

**یوسف ﷺ د الله ﷻ په حکم سره دوئ ته ځان اوخودو::** په ظاهره دامعلومیږی چه داول ځل دوو ملاقاتونوکښې حضرت یوسف ﷺ ته د خپل ځان ښکاره کولو د الله ﷻ حکم نه وو، دې ځل حکم اوشو. هغوی معامله صفاکړه. کله چه تکلیف زیات شو او سختي زیاته شوه نو الله ﷻ راحت ورکړو او وسعت ئې پیداکړو.لکه چه ارشاد دې سختنی سره آسانی ده یقینا سختنی سره آسانی ده.([1]) اوس ئې رونړه بیدار شو، څه په دې وجه چه د تاج کوزولو سره د تندی نښه ښکاره شوه. څه د دې قسم سوالونه، څه حالات او څه وراندینی واقعات ټول مخې ته راغله.بیاهم خپل شك لریکولود پاره ئې تپوس اوکړو ﴿أَإِنَّكَ لَأَنْتَ يُوسُفُ﴾ چه هم ته یوسف ئې؟ هغه د دې سوال په جواب کښې اوونیل چه او هم زه پخپله یوسف یم او دا زماسکه رور دې.الله ﷻ په مونږ باندې فضل او رحم اوکړو چه د جداکیدو نه

---

[1]) ۹٤/الانشراح:٥-٦.

پس ني ملازکړو. د ګډوډ کیدو نه پس ني راجمع کړو. تقوی او صبر ضائع کیږي نه. تیکي بغیر میوې راوړو نه پاتې کیږي.

**اوس رونړو هم د فضیلت اقرار اوکړو::** اوس خو ني رونړو د حضرت یوسف ﷺ د فضیلت او بزرګئ اقرار اوکړو چه واقعي د صورت او سیرت دواړو په اعتبار سره ته په مونږ باندي فوقیت لري. د ملك او مال په اعتبار سره هم الله ﷻ تاله په مونږ باندي فضیلت درکړي. دغه شان د بعضو په نیز دنبوت په اعتبار سره هم، ځکه چه حضرت یوسف ﷺ نبی وو او دا رونړه ئي نه وو. د دي اقرار سره ني د خپلي خطاکارئ هم اقرار اوکړو. په دي وخت حضرت یوسف ﷺ اوفرمائیل زه به د نن ورځي نه پس تاسو ته دا خطایادوم هم نه. زه په تاسو باندي هیڅ غصه وغیره نه کوم، نه به تاسو باندي دا الزام لګوم او نه تاسو نه خفګان کوم بلکه زما دعا ده چه الله ﷻ دي تاسو معاف کړي.هغه( اَرْحَمُ الرّٰحِمِيْنَ ) دي. رونړو عذر پیش کړو هغه قبول کړو.الله ﷻ دي ستاسو پرده اوساتي اوتاسو چه څه کړي هغه دي معاف کړي.

| اِذْهَبُوْا | بِقَمِيْصِيْ | هٰذَا | فَاَلْقُوْهُ | عَلٰى وَجْهِ | اَبِيْ |
|---|---|---|---|---|---|
| یوسئ | قمیص زما | دا | نو واچوئ دا | په مخ | د پلار زما |
| راوس، تاسو دا زما قمیص یوسئ \| نو زما د پلار په مخ ني واچوئ | | | | | |

| يَأْتِ | بَصِيْرًا | وَاْتُوْنِيْ | بِاَهْلِكُمْ | اَجْمَعِيْنَ | وَلَمَّا | فَصَلَتِ | الْعِيْرُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| او به ګرځي | لیدونکي | او راولئ ما ته | اهل خپل | تول | او هرکله چي | جداشوه | قافله |
| هغهٔ به لیدونکي اوګرځي \| اوماله خپل تول خاندان دلته راولئ \|..........اوکله چي قافله روانه شوه | | | | | | | |

| قَالَ | اَبُوْهُمْ | اِنِّيْ | لَاَجِدُ | رِيْحَ | يُوْسُفَ | لَوْلَآ اَنْ تُفَنِّدُوْنِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوونیل | پلار د هغوئ | بیشکه زهٔ | خامخا په ما لګی | بوئ | دیوسف | که نسبت نهٔ کوئ دبي عقلئ ما ته |
| نودهغوئ پلار اووئیل \| چي د یوسف ﷺ بوئي راباندي لګی \|خوهسي نه تاسوراته لیوني اووائی | | | | | | |

| قَالُوْا | تَاللّٰهِ | اِنَّكَ | لَفِيْ ضَلٰلِكَ | الْقَدِيْمِ |
|---|---|---|---|---|
| اوونیل دهغوئ | قسم دي په الله | بیشکه تهٔ | په سودا خپله | پخوانۍ کښي ئي |
| هغوئ اووئیل \| چي په الله ﷻ قسم تهٔ پخپل پخوانی وهم کښي یې | | | | |

**قوله تعالٰی:: اِذْهَبُوْا بِقَمِيْصِيْ هٰذَا**

**دحضرت یوسف ﷺ معجزه.-** د الله ﷻ رسول حضرت یعقوب ﷺ په خپل غم او خفګان کښي په ژړا ژړا نابینا شوې وو. په دې وجه حضرت یوسف ﷺ خپلو رونړو ته اوفرمائیل چه زما دا قمیص واخلئ او باباجان له ئي یوسئ. دا د هغوی مخ سره په لګولو به انشاء الله د هغه نظر روښانه شي بیا هغه او د کور تول خلق ماله دلته راولئ.

**دیعقوب ﷺ معجزه::** یوخوادا قافله دمصر نه اووتله اوبل خوا الله ﷻ حضرت یعقوب ﷺ ته د حضرت یوسف ﷺ خوشبوئي اورسوله نو هغوی خپل دې بچوته کوم چه هغوی سره وو اوفرمائیل چه ماته خود خپل خوږ خوئ یوسف خوشبوئي راځي لیکن تاسو خو ما کمتر کم عقل بوډا ګڼرئي اوزما په دې خبره یقین نه کوئي. دې وخت کښي قافله د کنعان نه د اتو میلو په فاصله باندي وه د الله ﷻ په حکم هوا حضرت یعقوب ﷺ ته د حضرت یوسف ﷺ خوشبوئي راورسوله دې وخت کښي د حضرت یوسف ﷺ د بې درکه کیدو اتیا(۸۰) کاله تیر شوې وو او قافله اتیا فرسخ د هغوی نه لرې وه لیکن نمسو

وغیره ني اووئیل چه ته خو د یوسف په مینه کښې په غلطئي کښې پریوتلې ئې چه نه هغه ستا د زړه نه لرې کیږي او نه تاته تسلي کیږي. د هغوی دا خبره ډیره سخته وه یو قابل اولاد د پاره دا لائق نه دي چه خپل پلار ته داسې اووائي او نه یو امتي د پاره دا لائق دي چه خپل نبي ته داسې اووائي.

| فَلَمَّآ اَنْ جَآءَ |
|---|
| نوکله \| چې راغئ |
| بیا چې زیرې ورکونکې |

| قَالَ | بَصِيْرًا | فَارْتَدَّ | عَلٰى وَجْهِهٖ | اَلْقٰىهُ | الْبَشِيْرُ |
|---|---|---|---|---|---|
| اووئیل یعقوب | نظر | نو واپس راغئ | په مخ د هغهٔ باندې | نوواچوؤ هغهٔ هغه قمیص | زیرې والا |

ر اغلو او قمیص ئې د هغهٔ په مخ واچولو نو بیا لیدونکې شو ............یعقوب ﷺ اووئیل

| مَا | مِنَ اللّٰهِ | اَعْلَمُ | اِنِّيْٓ | لَّكُمْ | اَلَمْ اَقُلْ |
|---|---|---|---|---|---|
| په هغه څه | د طرفه د الله نه | ښهٔ پوهیږم | چې بیشکه زهٔ | تاسو ته | آیا نه وؤ وئیلي ما |

آیاما تاسو ته نهٔ وو وئیلي چې بیشکه ما ته د الله ﷻ د طرفنه هغه خبرې معلومې دی چې

| ذُنُوْبَنَآ | لَنَا | اسْتَغْفِرْ | يٰٓاَبَانَا | قَالُوْا | لَا تَعْلَمُوْنَ﴿۹۶﴾ |
|---|---|---|---|---|---|
| د گناهونو زمونږ | دپاره زمونږ | ښښنه اوغواړه | ائې پلاره زمونږ | اووئیل هغوئ | چې تاسو پرې نهٔ پوهیږئ |

تاسو ته نهٔ دی معلومې \| هغوئ اووئیل ائې بابا جانه مونږ خطاکار یو \| زمونږ د پاره د گناهونو

| رَبِّيْ | لَكُمْ | سَوْفَ اَسْتَغْفِرُ | قَالَ | خٰطِئِيْنَ﴿۹۷﴾ | اِنَّا كُنَّا |
|---|---|---|---|---|---|
| د رب خپل نه | ستاسو د پاره | او به غواړم ښښنه زهٔ | اووئیل یعقوب | خطاکونکي | بیشکه وو مونږ |

ښښنه اوغواړه \| ......................وې فرمائیل دیر زر به د خپل رب نه تاسو د پاره ښښنه اوغواړم

| الرَّحِيْمُ﴿۹۸﴾ | الْغَفُوْرُ | هُوَ | اِنَّهٗ |
|---|---|---|---|
| رحم کونکې دی | ښښونکې دی | هم هغهٔ | بیشکه هغهٔ |

بیشکه هغهٔ ښښونکې رحم کونکې دی

قوله تعالیٰ:: فَارْتَدَّ بَصِيْرًا

**د یعقوب ﷺ بینائي واپس راغله:**- وائي چه د حضرت یوسف قمیص دحضرت یعقوب ﷺ مشر خوئ یهوداراوړې وو،دا خکه چه هغوی اول ددغه شان د دروغوقمیص پیش کړې وو کوم ئې چه په وینو کښې لړلې وو او پلار له ئې دا باور ورکولو چه دا دیوسف وینه ده. اوس د بدلې د پاره هم دغه راوړو چه د بدنې په بدله کښې ښیګړه اوشي، د خراب خبر په خائ ښه خبر راشي. په راتلو سره ئې د پلار په مخ اولګولو. هم هغه وخت د حضرت یعقوب ﷺ نظر واپس شو او بچوته ئې اووئیل گورئې ما تاسوته دا همیشه نه وئیل چه د الله ﷻ بعض خبرې ماته معلومې دی کوم نه چه تاسو صرف بې خبرئې. ما به تاسو ته وئیل چه الله ﷻ زما یوسف ضرور ماسره ملاووئ. اوس دلرو ورخو ذکر دې چه ما تاسو ته وئیلي وو چه نن ماله زما د یوسف خوشبوئي راځي. اوس خامن پښیمانه دی اود خپل خطاکارئي اقرارکولو سره د خپل پلار نه معافي غواړي. پلارئې په جواب کښې فرمائي چه زما د دې خبرې نه انکار نشته او زما د خپل رب نه دا هم امید شته چه هغه به زمونږ خطاګانې معاف کړي. خکه چه هغه

د بخښونو او مهربانو ذات دي. د توبه ويستونكو توبه قبلوي. زه به صباله د پيښمنۍ په وخت كښې ستاسو د پاره استغفار اوكړم.

**د پښمنۍ په وخت كښې دعاګانې كول پكار دي ::** په ابن جرير كښې دي چه حضرت عمر ﷺ به جمات ته راتلونو اوريدل به ئې چه څوك وائي اې الله تا راوغوښتم ما اومنل، تا حكم اوكړو ما په ځاى كړو، دا د پيښمنۍ وخت دې ته ما اوبښې. هغه غوږ كيخودو نو معلومه شوه چه د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ د كور نه دا آواز راتلو. هغه د دوى نه تپوس اوكړو نو هغه اووئيل هم دغه وخت دې د كوم وخت د پاره چه حضرت يعقوب ﷺ خپل ځامنو ته وئيلي وو چه زه به ستاسو د پاره لږ ساعت پس استغفار كوم. په حديث شريف كښې دي چه دا د جمعه شپه وه.په ابن جريركښې دي چه حضور ﷺ فرمائي چه دې نه مراد دا دې چه كله د جمعه شپه راشي خودا حديث غريب دې اود دې په مرفوع كيدوكښې هم كلام دې. والله اعلم.

فَلَمَّا دَخَلُوْا عَلٰى يُوْسُفَ

انو هر كله چې ورداخل شو دوئ|په يوسف باندې

| ..بيا چې دوئ ټول يوسف ﷺ ته اورسيدل

اٰوٰى اِلَيْهِ اَبَوَيْهِ وَقَالَ ادْخُلُوْا مِصْرَ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ

نورانزدې ئې كړل| ځان خپل ته| موراو پلار|اووې وئيل | داخل شئ | ښارته | كه خوښه وى د الله

نوهغهٔ مور پلار ځان سره كښينول |اووې وئيل چې ټول مصرته داخل شئ |كه الله ﷻ ته منظوره وى

اٰمِنِيْنَ ۝ وَرَفَعَ اَبَوَيْهِ عَلَى الْعَرْشِ وَخَرُّوْا

په امن سره | اوپورته ئې كړل | مور اوپلار خپل | اوكښينول ئې په تخت باندې| او پريوتل هغوئ

نو په امن كښې به اوسيږئ | اوخپل مور پلار ئې په شاهي تخت كښينول | اوټول يوسف ﷺ

لَهٗ سُجَّدًا ۚ وَقَالَ يٰٓاَبَتِ هٰذَا تَاْوِيْلُ رُءْيَايَ

هغهٔ ته | سجده كونكى | اواووئيل يوسف | ائې پلاره | دا | تعبير دې | د خوب زما

ته په سجده پريوتل | اويوسف ﷺ اووئيل چې ائې زما پلاره دا زما د خوب تعبير دې

مِنْ قَبْلُ ز قَدْ جَعَلَهَا رَبِّيْ حَقًّا ؕ وَقَدْ اَحْسَنَ

چې ليدلي وو مامخكښې | بيشكه اوګرځوه دا خوب | رب زما| رښتينې | او بيشكه احسان اوكړو

چې ما وړاندې ليدلي وو | هغهٔ (خوب) زما رب رښتيا كړو | او ما سره ئې (داځومره) احسان اوكړو

بِيْٓ اِذْ اَخْرَجَنِيْ مِنَ السِّجْنِ وَجَآءَ بِكُمْ مِّنَ الْبَدْوِ مِنْۢ بَعْدِ

په ما باندې| كله چې ئې| راوويستم زهٔ| دقيدخانې نه|او راتې وستئ تاسو| د صحرا نه| روستو د هغې نه

چې د جيل نه ئې راوويستلم | اوتاسو ټول ئې دكلى نه (دلته) راوستئ اپس د دې نه چې شيطان زما

اَنْ نَّزَغَ الشَّيْطٰنُ بَيْنِيْ وَبَيْنَ اِخْوَتِيْ ؕ اِنَّ رَبِّيْ

چې فساد اچولي وو | شيطان | په منځ زما | او په منځ | د رونړو زما كښې | بيشكه | رب زما

اوزما د رونړو په مينځ كښې فساد اچولي وو | ....................بيشكه زما رب

| لَطِيفٌ | لِّمَا | يَشَاءُ | إِنَّهُ | هُوَ | الْعَلِيمُ |
|---|---|---|---|---|---|
| ښۀ تدبیر کونکي دي | هغه کار لره | چې خوښه ئې شي | بیشکه هغۀ | هم هغۀ | ښۀ پوهه دي |
| چې څه غواړي نو هغې دپاره ښۀ تدبیر جوړوي | | | ......................... هغۀ په هر څه پوهه د حکمت | | |
| الْحَكِيمُ ۝ | | | | | |
| ښۀ حکمت والا دي | | | | | |
| خاوند دي | | | | | |

**قوله تعالی:: فَلَمَّا دَخَلُوا عَلَىٰ يُوسُفَ**

**دیعقوب ؈ قافله په مصرکښې :په رونړو باندې حضرت یوسف ؈** خپل خان ښکاره کولوسره فرمائیلي وو چه باباجان اود کور ټول خلق دلته راولئې نو رونړوئې هم داسې اوکړه. دې بزرګ قافلې د کنعان نه کوچ اوکړو او چه کله مصر ته نزدې اورسیدل نود الله ﷻ نبي حضرت یوسف ؈ د خپل پلار نبي الله حضرت یعقوب ؈ د استقبال د پاره د ښار نه بهر راااووتلو،دهغه د ځایٔ ورکولو وغیره چه کوم ذکر دې د هغې په بابت د بعض مفسرینو قول دې چه په دې عبارت کښې تقدیم او تاخیر دې. یعني هغوی دوی ته اوفرمائیل ته مصر ته لاړشه انشاء الله په امن او بې خطرې به ئې. اوس ښار ته په داخلیدو باندې هغه خپل پلار ته خپل خان سره ځایٔ ورکړو او هغه ئې په اوچت تخت باندې کینولو. خو امام ابن جریر ؒ ددې تردید کړیدې او فرمائیلي دی چه په دې کښې د سدي ؒ قول بالکل صحیح دې چه کله روميې ملاقات اوشو نو هغه خپل خان سره کړل. او چه کله د ښار دروازه راغله اوس په آرام سره دلته لاړشئي خو په دې کښې هم یوه خبره پاتې شوه.(ایوا)په اصل کښې په منزل کښې ځایٔ ورکولو ته وائي لکه ﴿ آوَىٰ إِلَيْهِ أَخَاهُ ﴾ کښې دی او په حدیث شریف کښې هم دی (من اوی محدثا) ([1])هیڅ وجه نشته چه مونږ د دې مطلب دا بیان نه کړو چه د هغوی د راتلونه پس او هغوی ته د ځایٔ ورکولونه پس هغوی ته اوفرمائیل چه تاسو په امن سره په مصر کښې داخل شئي یعنی دلته د قحط وغیره د مصیبتونونه په آرام سره محفوظ اوسیږئي.

**باقي وچ کالي د یعقوب ؈ راتلوسره ختمه شوه::**مشهوره ده چه کوم د اوچ کالئي باقي کال وو هغه د حضرت یعقوب ؈ دتشریف راوړو په وجه الله ﷻ لرې کړه. لکه د اهل مکه د قحط سالئي باقي کال دحضور ﷺ د دعا په وجه اخواشو. کله چه حضور ﷺ د مکې د خلقو د پاره بددعا اوکړه ﴿اللهم اعنی علیهم بسبع کسبع یوسف﴾ ([2])د قحط نه تنګ شو نو ابوسفیان ؓ شکایت اوکړو او ډیر زړا فریاد ئې اوکړو.

**راجح دادې چې دیوسف ؈ مور دغه وخت ژوندئې وه::**عبدالرحمن ؒ فرمائي چه دحضرت یوسف ؈ د مورخو دوراندې نه انتقال شوې وو هغه وخت د هغه پلار سره د هغه ترور راغلې وه. لیکن د امام ابن جریر ؒ او امام محمد بن اسحاق وینا ده چه د هغه مور پخپله ژوندئې وه د هغې په مرګ باندې څه صحیح دلیل نشته. اود قرآن کریم ظاهري الفاظ هم دا خبره غواړي چه د هغوی مور بي بي ژوندئې

---

[1]) صحیح بخاری کتاب فضائل مدینة، باب حرم المدینة رقم: ۱۸۷۰، صحیح مسلم: ۱۳۷۰، بیهقی: ۹۹/۶، نسائی:۴۴۲۲، ابن حبان: ۳۲/۹، مسندا ابی عوانه:۷۶/۵، مجمع الزوائد: ۳۰۷/۳، السنن الکبری: /۲۱۷، مسنداحمد:۱۵۲/۱، مسندابی یعلی: ۴۵۰/۱،شعب الایمان: ۱۸۹/۱،المعجم الکبیر:۲۷۳/۱.

[2]) صحیح بخاری کتاب الاستسقاء، باب دعاء النبی ﷺ ((اجعل سنین کسنی یوسف)) رقم: ۱۰۰۷، صحیح مسلم: ۲۷۹۸، ترمذی: ۳۲۵۴، مسنداحمد: ۴۳۱/۱، بیهقی: ۳۵۲/۳، ابن حبان: ۸۰/۱۱، مسندالحمیدی :۶۲/۱، مسندابی یعلی: ۶۳/۹، المعجم الکبیر: ۲۱٤/۹.

موجود وه او هم دغه خبره صحيح هم ده.حضرت يوسف عليه السلام خپل مور پلار خان سره د بادشاهئ په تخت کينول، هغه وخت مور پلار او يولس ورونړه ټول په ټول د هغوی وړاندې په سجده راپريوتل. هغه اوونيل باباجان واخله دا زما د خوب تعبير پوره شو. دا دی يولس ستوري او نمر او سپوږمئ چه زما په وړاندې په سجده دی.

وړاندې شريعتونو کښې د تعظيم سجده وه اوس مطلق حرامه ده ::دهغوی په شريعت کښې دا څيز جائزوو چه مشرانوته به نې دسلام کولوسره سجده هم کوله. بلکه د حضرت آدم عليه السلام نه واخله ترحضرت عيسی عليه السلام پورې دا خبره جائزوه. ليکن په دې امت محمديه کښې الله ﷻ د بل چا د پاره سوا د خپل ذات نه سجده مطلق حرام کړه او الله ﷻ دا د خپل خان د پاره مخصوص کړه. د حضرت قتاده رحمه الله وغيره دقول ماحصل مضمون هم دغه دې. په حديث کښې دی چه حضرت معاذ رضی الله عنه د شام ملك ته لاړو، هلته هغه اوکتل چه شامی خلق خپلو مشرانو ته سجده کوی. نو رسول کريم ﷺ ته نې عرض اوکړو چې دا خلق چه مشرانو او بزرگانوته سجده کوی نو ته خود دې د ټولونه زيات حقدار نې. حضور ﷺ اوفرمائيل چه که ما چاته د چا د پاره د سجدې حکم ورکولو نو ښځوته به مې حکم ورکولوچه خپلو خاوندانوته سجده اوکړئ. اودا سبب د هغوی د ډير لوئ حق په وجه دې. (<sup>۱</sup>)وسنده حسن. او په حديث شريف کښې دی چه حضرت سلمان رضی الله عنه د خپل اسلام په ابتدائی زمانه کښې په لارکښې حضور ﷺ اوکتلونو هغوی ته نې سجده اوکړه. حضور ﷺ اوفرمائيل سلمان! سجده ماته مه کوه بلکه سجده هغه رب ته کوه چه د هميشه ژوند والا دې او کله به هم نه مری. غرض دا چه په هغه شريعت کښې جائز وه په دې وجه هغوی ټولو سجده اوکړه. نو يوسف عليه السلام اوفرمائيل چه باباجی زما د خوب ښکاره کيدنه اوشوه. زما رب هغه رښتيا کړو اودا هغې انجام ښکاره شو. نو په بل آيت کښې د قيامت د ورځې د پاره هم دغه لفظ اووئيلې شو. ﴿يَوْمَ يَأْتِي تَأْوِيلُهُ﴾ نو دا هم الله ﷻ په ماباندې ډير لوئ احسان کړيدې چه هغه زما خوب رښتيا کړو. او چه کوم په اوده کيدو کښې ليدلې وو(الحمدلله) ماته نې په وينه هم اوخودلو. اود الله ﷻ دا هم احسان دې چه زه نې د قيدخانې نه خلاص کړم او تاسو ټول نې د بيابان نه راوستلې او ماسره نې ملاوکړئ. هغه به ځاروی ساتل نو عموماً به دشت او بيابان کښې اوسيدلو. فلسطين هم د شام په ځنګلوکښې دی،اکثريه هلته ديره وو. وائی چه دې به په غارونوکښې لاندې اوسيده او ځاروی به نې ساتل اوښان او چيلئ وغيره به ورسره وو.

بيا فرمائی چه دې نه پس چه شيطان په مونږ کښې جدائی اچولې وه. الله ﷻ چه د کوم کار اراده کوی نود هغې د پاره هم داسې اسباب مهياکوی او هغه آسانوی. هغه د خپلو بنديګانو په مصلحتونو باندې ښه پوهيږی. په خپلو افعالو اقوالو قضا او قدر، مختار او مراد کښې هغه باحکمت دې.

**د خوب ليدلو اوتعبير مينځ کښې څومره موده وه::** ① د سليمان رحمه الله قول دې چه د خوب په ليدو او د دې تعبير ښکاره کيدوکښې د څلوينښتو کالو وقفه وه. ② عبدالله بن شداد رحمه الله فرمائی د خوب تعبير واقع کيدوکښې د دې نه ډيره زمانه نه ده لګيدلې او دا آخری موده ده. ③ د حضرت حسن بصری رحمه الله نه روايت دې چه پلار او ځامن اتيا کاله پس ملاوشو، تاسوخيال اوکړئ چه په زمکه د حضرت يعقوب عليه السلام نه زيات څوك محبوب بنده نه وو. بيائې هم دومره موده د خوئ په فراق کښې تيره شوه. هروخت به نې د سترګونه اوښکې روانې وې او په زړه کښې به نې د غم موجونه راوچتيدل. ④ په يو روايت کښې دی چه دا موده د درې اتيا کالو وه،

<sup>۱</sup>) سنن ابن ماجه،کتاب النکاح، باب حق الزوج علی المرأة (حديث: ۱۸۵۲)

**دیوسف علیه السلام اویعقوب علیه السلام دفراق زمانه::** فرمائي چه کله حضرت یوسف علیه السلام په کوهي کښې اوغورزولې شو هغه وخت د هغه عمر اوولس کاله وو. د اتیاؤ کالو پورې هغه د پلار د سترګونه پناه وو. بیا د ملاقات نه پس درویشت کالوپورې ژوندې وو او د شپږوشلو کالو په عمر کښې وفات شو. د قتاده رحمه الله د وینا مطابق درې پنځوس کاله پس پلار او خوئ ملاوشو. ⑤ یو قول دې چه اتلس کاله د یو بل نه جدا وو. ⑥ یو قول دې چه څلويښت کاله جدائي وه او بیا په مصرکښې پلار سره د ملاقات نه پس اوولس کاله ژوندې وو. حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائي چه کله بنواسرائیل مصر ته اورسیدل. د هغوی شمیر صرف درې شپیته وو او د دې ځائ نه اووتل هغه وخت کښې د هغوی تعداد یو لاکه اویازره وو. ⑦ مسروق وائي چه د راتلو په وخت کښې سره د ښځواوسرولس کم درې سوه وو. ⑧ د عبدالله بن شداد رحمه الله قول دې چه کله دوی راغله نو شپږ اتیا کسان یعنی ښځې سړی بوډاګان ماشومان وو او چه کله وتل نو د دوی شمیر د شپږو لاکهونه بره بره وو.

| رَبِّ | قَدْ اٰتَيْتَنِيْ | مِنَ الْمُلْكِ | وَعَلَّمْتَنِيْ | مِنْ تَاْوِيْلِ |
|---|---|---|---|---|
| اې ربه زما | راکړې دې تاماله | حکومت | او اوښودل تا ما ته | حقیقت ته رسیدل |
| اې زما ربه! تا ماته حکومت راکړو او د خوبونو د تعبیر | | | | |
| **اَلْاَحَادِيْثِ فَاطِرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ اَنْتَ وَلِيّ فِي الدُّنْيَا** | | | | |
| د خبرو | اې پیداکونکیه د اسمانونو او د زمکې | ته | دوست زما ئې | په دنیا کښې |
| علم دې هم راکړو! اې د اسمانونو اود زمکې خالقه ته په دنیا او په اخرت دواړو کښې | | | | |
| **وَالْاٰخِرَةِ تَوَفَّنِيْ مُسْلِمًا وَّاَلْحِقْنِيْ بِالصّٰلِحِيْنَ** | | | | |
| او په اخرت کښې | وفات کړې ما | په داحال چې مسلمان یم | او یوځائې کړې ما | د صالحانو خلقو سره |
| زما کار سازیې! ما د دنیا نه د تابعدارئ په حالت وفات کړه! اود نیکانو په ټولی کښې مې شامل کړه | | | | |

**قوله تعالى:: تَوَفَّنِيْ مُسْلِمًا**

**دیوسف علیه السلام دعااود مرګ دعا کولوحقیقت.** -نبوت ملاؤ شو، بادشاهت ورکړې شو، غمونه ختم شو، مور پلاراو رونړو او ټولوسره ملاقات اوشو نو د الله تعالی نه ئې دعااوکړه لکه څنګه چه تا په ماباندې د دنیا نعمتونه راپوره کړی دی دا نعمتونه په آخرت کښې هم راپوره کړې. کله هم چه مرګ راشي نو په اسلام باندې او ستا په حکم منلوکښې دې راشي او زه نیکانوخلقو کښې یوځائ کړیشم. او په انبیاء او رسولانوکښې (صلوات الله وسلامه علیهم اجمعین) ډیر ممکن دی چه د حضرت یوسف علیه السلام دا دعا د وفات په وخت کښې وی لکه چه په بخاری او مسلم شریف کښې د حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها نه ثابت دی چه د وفات په وخت کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم خپله ګوته اوچته کړه او دا دعا ئې اوکړه یا الله رفیق اعلی سره مې ملاؤکړې او درې ځل ئې هم دغه دعا اوکړه.[1] اودا هم کیدې شي چه د حضرت یوسف علیه السلام ددې دعا مقصددا وی چه کله هم مرګ راشي چه په اسلام کښې راشي او نیکانو سره یوځائ کړیشم. داسې نه ده چه هغه دغه وخت کښې دا دعا د خپل مرګ د پاره کړې وی. د دې بالکل هم دغه مثال دې چه څوک چا ته دعا کولو سره وائي چه الله تعالی دې تاله په اسلام باندې مرګ راولي. یا زمونږ دا دعا چه الله تعالی

[1] صحیح بخاری کتاب المغازی باب مرض النبی صلی الله علیه وسلم ووفاته، صحیح مسلم ۲۴۴۴، حاکم:۸/٤ موطاء: ۲۳۹/۱، المعجم الاوسط: ۷۱/٤ احمد: ۸۹/٦، مسندابی یعلی: ٤۳٦/۷، المعجم الکبیر:۳۳/۲۳.

زما مرګ په اسلام باندې او نيکانو خلقو سره مو يوځائ کړه. که چرې همدغه مقصد وي چه واقعي هغه دې وخت کښې هم مرګ غوښتې نو ممکن دی چه دا خبره هم په هغه شريعت کښې جائز وی. نود حضرت قتاده رحمه الله قول دې چه کله د هغه ټول کارونه جوړشو، سترګې دې يخې شوې، ملك مال دولت د هغه عزت شهرت خاندان رورولی بادشاهت هر څه ملاؤشو نود صالحينو په ډله کښې د يوځائ کيدو شوق پيدا شو. حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائی هم دې د ټولونه اول ددې دعا غوښتونکې دې، ممکن دی چه د دې نه د حضرت ابن عباس رضي الله عنه دا مراد وی چه دا دعا د ټولونه اول کونکې يعنی په اسلام باندې د خاتمې دعادټولونه اول هم دهغوی وه لکه چه دادعا ﴿اغْفِرْلِيْ وَلِوَالِدَيَّ﴾دټولونه اول نوح عليه السلام غوښتې وه. سره د دې که چرې دا اووئيلې شی چه حضرت يوسف عليه السلام هم د مرګ دعا کړې وه نو مونږ وايو چه کيدې شی چه د هغوی په دين کښې جائز وی او زمونږ په نيز خو سخته منع ده.

**زمونږ په شريعت کښې دمرګ دعا کول نشته ::**په مسند کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائيلی په تاسو کښې دې يوکس هم د څه تکليف د وجه د مرګ دعا نه کوی که هغه نيك وی نو ډيره ممکن ده چه د هغه ژوند به دهغه نيکئی زيات کړی اوکه هغه هم داسې خواهش کول ضروری ګڼړی نو داسې دې وائی چه اې الله چه ترکومې پورې زما ژوند ستا په علم کښې زما د پاره بهتر دې ما ژوندې اوساتې اوچه کله ستا په علم کښې زمادپاره زما مرګ بهتر وی نومانه مرګ راکړه.([1])بخاری شريف او مسلم شريف هم په دې حديث کښې دی چه په تاسو کښې دې څوك د يو سختنئی د نازليدلو په وجه هيڅ کله د مرګ خواهش نه کوی. که هغه بد دې نو ډير ممکن دی چه په ژوند کښې يووخت د توبه توفيق ملاوشی، بلکه داسې دې وائی چه اې الله ترکومې زما ژوندون بهتر دې نو ما ژوندې اوساته. ([2])په مسند احمد کښې دی چه مونږ يوځل د حضور ﷺ په مجلس کښې ناست وو. هغوی مونږ ته وعظ او نصيحت اوکړو او زمونږ زړونه ئې ګرم کړل. هغه وخت په مونږ کښې د ټولونه زيات ژړاکونکې حضرت سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه وو. هم په ژړا ژړا کښې د هغه د خلې نه اووتل چه افسوس زه مړشوې. حضور ﷺ اوفرمائيل چه سعد! زما په وړاندې د مرګ خواهش کوې؟([3]).درې ځل ئې هم دغه الفاظ سردوباره کړل بيائې اوفرمائيل چه اې سعد! که چرې ته د جنت دپاره پيداکړې شوې ئې نو چه څومره دې عمر زياتيږی ستا نيکئی به زياتيږی نو ستا په حق کښې بهتر دی. په مسند کښې دی چه حضور ﷺ فرمائی په تاسو کښې دې څوك هيڅ کله او هيڅ کله د مرګ خواهش نه کوی او نه دې د دې دعا کوی د دې نه وړاندې چه هغه راشی، او که چرې داسې څوك وی چه د هغه په خپلو اعمالو يقين او باور وی. واورئی چه تاسو کښې څوك مړ شی د هغه اعمال منقطع شی. د مؤمن اعمال هم د هغه نيکئی زياتوی. ([4])

**البته د دينی فتنه په وخت دمرګې سوال کول جائز دی::**دا ياد ساتئی چه دا حکم په هغه مصيبت کښې دې چه دنياوی وی او هم د ده ذات سره تعلق لری. خو که فتنه مذهبی وی او مصيبت دنياوی وی نود مرګ سوال کول جائزدی. لکه څنګه چه د فرعون جادوګرو هغه وخت دعا کړې وه چه کله فرعون د هغوی د قتل کولو دهمکی ورکوله نو وئی وئيل چه اې الله په مونږ باندې صبر راوروئې او مونږ د اسلام په حالت کښې مړه کړې.

---

[1]) صحيح بخاری کتاب الدعاء بالموت والحياة، ۶۳۵۱، صحيح مسلم: ۲۶۸، احمد ۱۰۱/۳، ابوداؤد: ۳۱۰۹، ابن ماجه: ۴۲۶۵، ترمذی: ۹۷۱، نسائی: ۱۸۲۰.

[2]) صحيح بخاری کتاب المرض باب تمنی المريضالموت رقم: ۵۶۷۱ صحيح مسلم: ۲۶۸۲.

[3]) احمد: ۲۶۷/۵، والمعجم الکبير:۲۱۷/۸ح ۷۸۷۰، مجمع الزوائد: ۲۰۳/۱۰

[4]) مسنداحمد: ۲۵۰/۲. ابن حبان: ۲۸۵/۷، بيهقی: ۳۷۷/۳.

**د بی بی مریم دعاء::** دغه شان چه کله حضرت مریم علیهاالسلام د بچي د زیږیدو د دردنه اوویریدله او د کهجورې دتني لاندې راغله نو ناځاپې د خُلې نه اووتل چه افسوس زه د دې نه وړاندې مړه شوې وې اونن د خلقو د زړونو او ژبونه هیره کړې شوې وې. دا هغوی هغه وخت فرمائیلي چه دا معلومه شوه چه خلق به په هغې د زنا تهمت لګوي. ځکه چه هغه واده شوې نه وه. او حمل نې پیدا شوې وو.بیائې ماشوم پیدا شوې وو او دنیا شور جوړکړې وو چه بی بی مریم ډیره خرابه ښځه ده، نه نې مور خرابه وه اونه نې پلار بدکاره وو. نو الله ﷻ د هغې مخلصې اوکړه او خپل بنده حضرت عیسی ﷺ ته نې په زانګوکښې ژبه ورکړه او مخلوق ته نې یو زبردسته معجزه او ښکاره نښه اوخودله.

په یو حدیث کښې د یوې اوږدې دعا ذکر دې په کومه کښې چه دا جمله هم ده چه اې الله چه کله ته یو قوم سره د فتنې اراده اوکړې نو ما په هغه فتنه کښې د اخته کولونه وړاندې د دې دنیا نه واخلې.[1]

حضور ﷺ فرمائي دوه څیزونه انسان په خپل حق کښې خراب ګڼړي. مرګ خراب ګڼړي او مرګ د مؤمن د پاره د فتنې نه بهتر دې. د مال کمې انسان د خپل ځان د پاره بد خیال کوي خود مال کمې د حساب کمې دې[2] غرض دا چه د دیني فتنو په وخت کښې مرګ طلب کول جائزدي.

**دعلي دمرګ دعاء::** حضرت علي ﷺ د خپل خلافت په آخری زمانه کښې چه کله اوکتل چه د خلقو شیطانئي په یوشان ختمیږي نه او په هیڅ قسم باندې اتفاق نه نصیب کیږي نو دعا نې اوکړه اې رب العالمین ما ته خپل ځان ته اوغواړې دا خلق زما نه او زه د دوی نه تنګ شوې یم.

**دامام بخاري رحمة الله علیه دمرګ دعاء::** په حضرت امام بخاري ﷺ باندې چه کله د فتنو زور شو او دین سنبالول ګران شو او د خراسان امیر سره لوئ لوئ جګړې راغلې نو هغه د الله ﷻ نه دعا اوکړه اې الله اوس ماخپل ځان ته راوبله. یو حدیث شریف کښې دی چه دفتنوپه زمانه کښې به انسان قبرته ګوري اوافسوس به کوي چه زه په دې ځائ کښې وې[3] ځکه چه فتنو، بلاګانو، زلزلو او سختیانو به هریو مفتون په فتنوکښې راګیر کړې وي.

**د یوسف ﷺ دورنړو استغفارکول::** ابن جریر کښې دي چه کله حضرت یعقوب ﷺ د خپلو ځامنود پاره دچانه چه ډیرې غلطئي شوې وې استغفار اوکړو نو الله ﷻ دهغه استغفارقبول کړواوهغوی نې اوبښل.

حضرت انس ﷺ فرمائي چه کله ټول خاندان په مصرکښې راجمع شو نود یوسف ﷺ رونړو یو ځل په خپل مینځ کښې اوونیل چه مونږ باباجان څومره تنګ کړې دې او مونږ په خپل رور یوسف ﷺباندې کوم ظلمونه کړي دی نو ښکاره خبره ده چه اوس به دا دواړه بزرګان مونږ ته څه نه وائي او زمونږ خطاګانې به معاف کړي ولې څه خیال خو شته چه د الله ﷻ په نیز به زمونږ څه حال وي؟ آخرنې دا خبره اوکړه چه راځئ باباجان له ورځو او هغه ته درخواست کوو. دغه شان ټول یوځائ شول او هغه له راغله هغه وخت حضرت یوسف ﷺ هم پلار سره ناست وو. راتلوسره هغوی په یو آواز سره اوونیل حضور مونږ تاسو له د یو داسې امر باره کښې راغلې یو چه د دې نه وړاندې کله هم د داسې اهم کار د پاره نه یوراغلي.باباجي او رور جانه نن مونږ په داسې مصیبت کښې اخته شوې یو او زمونږ زړونه داسې رچیږي چه د نن نه وړاندې زمونږ داسې حالت کله هم نه دې شوې. غرض دا چه هم دا قسم نرمي او لجاجت نې اوکړو نود دواړو بزرګانو زړه راړاك شو.ښکاره خبره ده چه د انبیاء په زړونوکښې د ټولو خلقو نه زیاته نرمي او رحم وي. تپوس نې ترې اوکړو چه آخر تاسو څه وائې او داسې ویریږئ ولې؟

[1] ترمذی کتاب التفسیر القرآن بابومن سورة ص: ۳۲۳۳وهوحسن، احمد: ٦٦/٤، حاکم: ۷۰۲/۱، مجمع الزوائد:۱۷۷/۷، المعجم الکبیر:۲۹۰/۸.

[2] احمد: ٤۲۷/٥، وسنده صحیح، مجمع الزوائد: ۲٥۷/۱.

[3] صحیح بخاری کتاب الفتن باب لاتقوم الساعة حتی یغبط اهل القبور رقم: ۷۱۱٥، صحیح مسلم: ۱۸۷.

ډېرلو اوونيل چه تاسو ته ښه پته ده چه مونږ تاسو څومره تنګ کړي ئي او مونږ په رور باندې څومره ظلم کړې؟ دواړو ونيل او معلومه ده نو بيا؟ هغوی اوونيل چه آيا دا صحيح ده چه تاسو دواړو زمونږ تقصير او غلطي معاف کړې ده.؟ هغوی ونيل چه او بالکل صحيح ده مونږ د زړه نه معاف کړې ئي نو بيا هغه هلکانو اوونيل چه ستاسو د زړه نه معاف کول هم بې فائدې دی تر کومې چه الله ﷻ مونږ معاف نه کړي. تپوس ئې اوکړو چه ښه ده نو بيا زمونږ نه څه غوارئ؟ جواب کښې اوونيل چه هم تاسو زمونږ دپاره د الله ﷻ نه بښنه اوغوارئ نو الله ﷻ به د وحی په ذريعه تاسو ته خبر اوکړی چه الله ﷻ مونږ معاف کړو او دې سره به زمونږ په سترګوکښې نور زړونوکښې سرور راتلې شی ګنی زمونږ خو به دواړه جهانه برباد شی.

**یعقوب ؑ او یوسف ؑ دواړو د مغفرت دعاء غوښتل::** هم په دغه وخت هغوی اودريده او قبلې ته ئې مخ کړو،حضرت یوسف ؑ د هغوی شاته اودريدو ډير په خشوع او خضوع سره ئې د الله ﷻ په حضور کښې په زارو او منتونو سره دعاګانې شروع کړې. حضرت یعقوب ؑ به دعا کوله او حضرت یوسف ؑ به آمين ونيل. وائی چه شل کالو پورې دعا قبوله نه شوه. آخر شل کالوپورې چه کله ئې د رونړو وينه د الله ﷻ د ويرې اوچيدله نو هله وحی راغله اود خامنو د بښنې زيرې واورولې شو. بلکه دا هم اوفرمائيلې شو چه د الله ﷻ وعده ده چه ستا نه پس به هم نبوت دوی ته ملاويږی.

دا د حضرت انس ؓ قول دې او په دې کښې دوه راويان ضعيف دی. رقاشی صالح مری سدی ﷺ فرمائی حضرت یعقوب ؑ د خپل مرګ په وخت کښې حضرت یوسف ؑ ته وصيت اوکړوچه ما د حضرت ابراهيم ؑ او حضرت اسحاق ؑ په ځای کښې خښ کړئ، د هغه د وفات نه پس ئې د هغه وصيت پوره کړو اود شام په ملك کښې هغه د خپل پلار نيکه خواکې خښ کړلو.﴿ عليهم الصلوات والسلام﴾

| ذٰلِكَ | مِنْ أَنۢبَآءِ | الْغَيْبِ | نُوحِيهِ | إِلَيْكَ ۚ وَمَا كُنتَ | لَدَيْهِمْ | إِذْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| داقيصه | د خبرونو | د غيبو نه ده | چې وحی کوؤ مونږ هغه | تاته | اونه وې ته | د هغوئ سره | کله چې |
| دا د غيبو خبرونه دی | چې مونږ ئې تاته د وحی په ذريعه درليږو | او ته هغه وخت هغوئ سره موجود نه | | | | |

| أَجْمَعُوٓا | أَمْرَهُمْ | وَهُمْ | يَمْكُرُونَ ۝ | وَمَآ | أَكْثَرُ النَّاسِ | وَلَوْ حَرَصْتَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| راجمع کړو هغوئ | کارخپل | او هغوئ | سازش کوؤ | اونه دی | زيات خلق | او اګر که حرص اوکړې ته |
| وې کله چه هغوئ په خپل سازشی کار باندې اتفاق کولو | او په دوئ کښې زيات خلق ايمان نه راوړی | | | | | |

| بِمُؤْمِنِينَ ۝ | وَمَا تَسْـَٔلُهُمْ | عَلَيْهِ | مِنْ أَجْرٍ | إِنْ هُوَ | إِلَّا | ذِكْرٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| منونکی | اونه غواړې ته ددوئ نه | په دې باندې | څه اجرت | نه دی دا | مګرا | يو نصيحت دې |
| اګر که ته ئې ايماند ارغواړې | او ته د دوئ نه په تبليغ باندې څه اجر نه غواړې | دا قرآن خو د ټول | | | | |

| لِّلْعٰلَمِينَ ۝ |
|---|
| دپاره دخلقو |
| مخلوق دپاره نصيحت دې |

**قوله تعالی:: ذٰلِكَ مِنْ أَنۢبَآءِ الْغَيْبِ نُوحِيهِ إِلَيْكَ** ډوله قصه بيان کړه چه رونړو هغه انبياء ته دوحی په ذريعه دواقعاتو خبر ورکولې شی.- ديوسف ؑ هغه ځنګه بچ کړو او ځنګه په ترقئ سره بدی اوکړه اوځنګه ئې دهغه د ختمولو کوشش اوکړو، الله ﷻ

اوعروج باندې اورسولو. اوس خپل نبی ته فرمائی چه دا اود دې په شان هم هغه ځیزونه ټول زمونږ د طرف نه تاته درکولې شی چه خلق د دې نه نصیحت حاصل کړی. اودهغه د مخالفینوهم سترګې کولاؤ کړی او په هغوی باندې زمونږ حجت قائم شی نو هغه وخت کښې ته هغوی سره نه وو کله چه هغوی حضرت یوسف ﷺ سره بنکاره دهوکه کوله. په کوهی کښې د اچولو د پاره ټول تکره شو. صرف زمونږ په خودنه تاته دا واقعات معلوم شو ، لکه څنګه چه د حضرت مریم بی بی په قصه کښې بیانولو سره ارشاد اوشو چه کله هغوی خسنړې اچول چه مریم به څوك پالي نو هغه وخت هغوی سره نه وې. د حضرت موسی ﷺ په قصه کښې هم دا قسم ارشاد فرمائیلې شوې دې چه د مغرب طرف ته کله مونږ حضرت موسی ﷺ ته خپلې خبرې خودلې نو هلته نه وې. دغه شان د اهل مدین معامله هم تانه پته وه. د ملا اعلی د خپل مینځ خبرو اتروکښې موجود نه وې دا هر څه زمونږ د طرف نه تاته د وحي په ذریعه اوخودلې شو. دا کولاؤ دلیل دې ستا د نبوت او رسالت چه تیرشوی واقعات ته خلقو ته داسې کولاؤ کولاؤ بیانوې لکه چه تا په خپلو سترګو لیدلې وی او هم ستا په وړاندې تیرې شوی وی. بیا دا واقعات د نصیحت، عبرت،حکمت او موعظت نه ډك دی په څه سره چه د انسانانو دنیا او آخرت بنائسته کیدې شی. سره د دې خبرو بیا هم ډیر خلق د ایمان نه خالی پاتې کیږی، که ته ډیر کرتې غواړې چه دوی دې مؤمنان شی. په آیت مبارك کښې دی ﴿وَإِنْ تُطِعْ أَكْثَرَ مَنْ فِي الْأَرْضِ يُضِلُّوكَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ﴾ که ته د ډیرو انسانانو تابعداری کوې نو دوی به تا د الله ﷻ د لارې نه واړوی. د ډیرو واقعاتو بیانولو نه پس هرې یوې واقعې سره قرآن ارشاد فرمائیلې دې چه په دې کښې زیردسته نښنه ده خو بیا هم اکثر خلق نامنونکی دی. ته که څومره هم کوشش کوې اود الله ﷻ مخلوق ته د هغه لار ښائې او په دې کښې ستا خپله دنیاوی فائده مقصد نه وی، ته د هغوی نه هیڅ مزدوری او بدله نه اخستل غواړې بلکه دا هر څه صرف د الله ﷻ د رضا د پاره د مخلوق د نفع د پاره دی. نو دا خو د ټول جهان د پاره سراسر ذکر دې چه هغوی نیغه لار اومومي، نصیحت حاصل کړی، عبرت واخلي، هدایت او خلاصی بیاموسي.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَكَأَيِّنْ | مِّنْ آيَةٍ | فِي السَّمَاوَاتِ | وَالْأَرْضِ | يَمُرُّونَ |
| او ډیرې دی | د نښو نه | په آسمانونو کښې | اوپه زمکه کښې | چې تیریږی دا خلق |

اوپه آسمانونو اوپه زمکه کښې څومره ډیرې نښې دی اپه کومو چې دوئ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَلَيْهَا | وَهُمْ عَنْهَا | مُعْرِضُونَ ۝ | وَمَا يُؤْمِنُ | أَكْثَرُهُمْ | بِاللَّهِ |
| په هغې باندې | او دوئ اد هغې نه | مخ اړونکی دی | اونه راوړی ایمان | زیات د دوئ نه | په الله باندې |

تیریږی | اودوئ د هغې نه مخونه اړولی وی | او په دوئ کښې زیات په الله ﷻ ایمان نه راوړی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِلَّا | وَهُمْ | مُّشْرِكُونَ ۝ | أَفَأَمِنُوا | أَنْ | تَأْتِيَهُمْ |
| مګرپه داسې طریقه | چې هغوئ | شرك کونکی وی | آیا نودوئ په امن دی | ددې نه چې | راشی دوئ ته |

او بیا شرك هم کوی | آیا دا خلق د دې خبرې نه بې غمه شوی دی | چې د الله ﷻ د طرف نه پرې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| غَاشِيَةٌ | مِّنْ عَذَابِ اللَّهِ | أَوْ تَأْتِيَهُمُ | السَّاعَةُ | بَغْتَةً |
| یوګیرونکې مصیبت | د عذاب د الله نه | یا راشی دوئ ته | ساعت د قیامت | ناساپه |

د عذاب څه داسې آفت راپریوزی | چې په دوئ خور شی | یاناګهانه پرې قیامت راشی

| | |
|---|---|
| لَا يَشْعُرُونَ۝ | وَهُمْ |
| په داسې حال کښې چې دوئ ا خبر نه وی ا | |
| اودوئ ترې نه خبر هم نۀ وی ا | |

قوله تعالى:: وَمَا يُؤْمِنُ أَكْثَرُهُمْ بِاللَّهِ

**د شرک خفی حقیقت**:- بیان کیږی چه د قدرت ډیرې نښې د وحدانیت او شهادتونه شپه ورځ د هغوی په وړاندې دی. بیا هم ډیر خلق په پوره بې پروائۍ سره او ناراستئی سره په هغې کښې هیڅ غور اوفکر نه کوی.دادومره فراخ اسمان دادومره خوره زمکه، دا روښانه ستوری، ګردش کونکې نمر، سپوږمئ، ونې غرونه، پتی، شینکئی، سبزئی، دا غرمباری کونکې سمندر،دا په زور سره چلیدونکې هواګانې، دا مختلف قسم رنګارنګ میوې، داجدا جدا غلې اود قدرت بې شمیره نښې یو د عقل خاوند ته دومره هم په کارنشی راتلې؟ چه هغه د دې نه دخپل رب چه یو دې،صمد دې، خان له دې، یوازې دې، څوك نې شریك نشته،چه قادر او قیوم دې، چه باقی او کافی دې د هغه ذات اوپیژنی اود هغه نومونو او صفتونو قائل شی؟

**اکثرخلق دایمان سره سره شرک هم کوی**::بلکه په هغوی کښې خود اکثرو ذهنونه دومره خراب شوی دی چه په الله ﷻ باندې ایمان شته خو د شرك نه لاس نه راکاږی. آسمان زمکه غر اود ونو انسان اود پیریانو خالق خو الله ﷻ منی خو بیا هم د هغه علاوه هغه سره نور شریکان ګرځوی. دا مشرکان حج ته راځی،احرام ترې او لبیك وائی چه اې الله ستا څوك شریك نشته،کوم چه هم شریك دی د هغې ته پخپله مالك ئې او د هغوی د ملکیت مالك هم ته ئې. په صحیح مسلم شریف کښې دی چه کله هغوی دومره ونیل چه زه حاضر یم اې الله ستاڅوك شریك نشته، نوحضور ﷺ فرمائیل بس بس یعنی اوس وړاندې هیڅ مه وایه.([1])په واقع کښې شرك لوئ ظلم دې چه الله ﷻ سره سره د نورو هم عبادت اوکړې شی.بخاری او مسلم شریف کښې ابن مسعود رضی الله عنه د حضور ﷺ سوال کوی چه د ټولو نه لویه ګناه کومه یوه ده؟ حضور ﷺ اوفرمائیل چه ستا رب سره شریك ګرځول، سره د دې چه هم هغه یو الله ته پیدا کړې نې. ([2]).

**د منافق ایمان هم دغه شان وی** ::دغه شان په دې آیت کښې منافقان هم داخل دی، د هغوی عمل هم د اخلاص نه وی بلکه هغوی ریاکاروی او ریاکاری هم شرك دې. دقرآن پاك فرمان دې ﴿إِنَّ الْمُنَافِقِينَ يُخَادِعُونَ اللَّهَ وَهُوَ خَادِعُهُمْ﴾ ([3]) منافق الله ﷻ ته دهوکه ورکول غواړی خودوی د الله ﷻ د طرف نه پخپله په دهوکه کښې دی. دوی دمانځه د پاره ډیر په سستئی سره اودریږی.صرف خلقو ته خان خودل نې مقصد وی، د الله ﷻ ذکر خو صرف په نامه وی.

**شرك کښې وړکې او غټ دواړه شته**::هم یاد ساتل پکاردی چه بعض شرك ډیر وړوکې او پټ وی، پخپله کونکی ته هم پته نه لګی. حضرت حذیفه رضی الله عنه یو بیمار له لاړو نود هغه په مټ نې یو تار تړلې اولیدو نو هغه دا اوشلولو او هم دا آیت نې اولوستلو چه سره دایماندارنی مشرك کیږی؟ ([4])په حدیث

---

[1]) صحیح مسلم کتاب الحج باب التلبیة وصفتها ووقتها رقم: ۱۱۸۵، بیهقی ٤٥/٥، المعجم الکبیر: ۱۹۸/۱۲.

[2]) صحیح بخاری کتاب التفسیر باب قوله ﴿والذین لایدعون مع الله الها آخر...﴾ ۷٤٦۱، صحیح مسلم: ۸٦،ابوداؤد: ۲۳۱۰،ترمذی: ۳۱۸۲، ابن حبان: ۲٦۱/۱۰،مسندابی عوانه: ٥۹/۱، بیهقی: ۱٥/۸،السنن الکبری:۲۹۰/۲

[3]) ٤/النساء:۱٤۲.

[4]) ترمذی کتاب النذور والایمان بما جاء فی ان من حلف بغیر الله فقد اشرك رقم: ۱٥۳٥، وهوصحیح.

شریف کښې دي چه د الله ﷻ نه بغیر د بل څیز د نوم قسم اوخوړلې شي نو هغه مشرك شویه حواله د ترمذي شریف. دحضور ﷺ فرمان دې چه پوکی، جاروګانې تارونه او بندونه اود دروغو تعویذونه شرك دي. (۱)الله ﷻ خپل بندیګان په توکل د ټولو سختونه لرې کوی (ابوداؤد وغیره). د حضرت عبدالله بن مسعودﷺ بی بی فرمائی چه د حضرت عبداللهﷺ عادت وو چه کله به د باهر نه راتلو نو په زوره به ئې اخ تو‌خ کولو چه کور والا پوهه شي او دې هغه په څه داسې حالت کښې اونه وینی چه بدې لګی. یو ورځ هغه په دې حالت کښې راغلو چه ما سره یوه بوډۍ ناسته وه چه د بیمارئی په وجه ئې په ماباندې دم کولو له راغلې وه. کله چه ما د هغه د اخ تو‌خ آواز واوریدو نوهغه می د کټ لاندې پټه کړه. هغه راغلو ماسره په کټ کیناستو او زما په غاړه ئې تار اولیدونو تپوس ئې اوکړو دا څه دې؟ ما ونیل دا مې دم کړې دې او تړلې مې دې. هغه دا اونیولو او پریکړو او وئی فرمائیل چه د عبدالله کور د شرك نه بې نیاز دې. ما پخپله د رسول الله ﷺ نه اوریدلی دي پوکی جاروګانې تعویذونه ساختونه بندونه شرك دې. ما ونیل دا ته څنګ وائې زما سترګه خوګیدله فلانکی یهودی له به تلم هغه به دم کوله نو ماته به آرام کیدلو. هغه اوفرمائیل ستا په سترګه به شیطان نوکاره لګوله او د هغه په پوکی سره به هغه لرې کیدلو.تاله هم دا کافی وو چه هغه وائی کوم چه رسول الله ﷺ خودلی دی﴿اذهب الباس رب الناس اشف وانت الشاف لاشفآء الاشفاؤك لایغادر سقما﴾(۲)دمسند احمد یویل حدیث کښې دعیسی ابن عبدالرحمن نه روایت دي چه عبدالله بن حکیم بیمارشو، مونږ د هغه تپوس له لاړو، هغه ته اووئیلې شوڅه تار بند زوړند کړه نو ښه به شي. هغه ونیل چه زه تار او بند زوړند کړم؟ سره ددې چه د رسول الله ﷺ فرمان دې کوم سړې چه کوم څیز زوړند کړی هغه هم دغې ته حواله کولې شي. (۳)

**تمیمه اچول هم شرك دې:** حضورﷺ فرمائی چاچه تمیمه زوړند کړه هغه شرك اوکړو(۴)په مسند کښې دی چه څوك څه داسې څیز زوړندکړی الله دې هغه کار اونه کړی او چه کوم سړې هغه دا زوړندکړی الله ﷻ دې هغه هم زوړنداوساتی.(۵) په یو حدیث قدسی کښې دی الله ﷻ فرمائی زه د ټولو شریکانونه بې نیازه اوبې پرواه یم څوك چه په خپل کارکښې زما څوك شریك اوګرځوی زه هغه اود هغه شرك پریږدم(مسلم)(۶)په مسندکښې دی چه د قیامت په ورځ کله چه اول او آخر ټول راجمع کړې شی د الله ﷻ د طرف نه به یو آوازکونکې آواز اوکړی چا چه په خپل عمل کښې شرك کړې دې هغه دې د هغې ثواب د خپل شریك نه اوغواړی، الله ﷻ د ټولو شریکانونه ډیر د شرك نه بې نیازه دې(۷)مسندکښې دی حضور ﷺ فرمائی ماته په تاسو باندې ډیره ویره د وړوکی شرك ده. خلقو تپوس اوکړو هغه څه څیز دې؟ وئی فرمائیل ریاکاری. د قیامت په ورځ به خلقو ته د عملونو بدله ورکولې شی هغه وخت به الله ﷻ اوفرمائی اې ریاکونکو د چا د خودلو اوریدلوډپاره چه تاسو عملونه کړی وو هم د هغوی نه خپل اجر اوغواړئی او ګورئی چه هغوی درکوی که نه؟ (۸)

---

(۱) ابوداؤد، کتاب الطب باب ل تعلیق التمائم: ۳۸۸۳، ابن ماجه: ۳۵۳۰، احمد: ۳۸۱/۱، ابن حبان: ۶۰۹۰، بیهقی: ۳۵۰/۹.

(۲) مسنداحمد: ۳۸۱/۱، مسندابی یعلی۵۲۰۸، البغوی: ۳۲۴۰، ابن ماجه: ۳۵۳۰.

(۳) احمد: ۳۱۰/۴، ترمذی کتاب الطب باب ماجاء ل کراهیة التعلیق: ۲۰۷۲، حاکم: ۲۱۶/۴ ابن حبان ۷۵۰۳، المعجم الکبیر: ۹۶۰۳.

(۴) احمد: ۱۵٦/۴ وسنده صحیح.

(۵) احمد: ۱۵۴/۴ وسندحسن، ابن حبان ۶۰۸٦، حاکم: ۴۱۷/۴ مسندابی یعلی۱۷۵۹، الطحاوی: ۳۲۵/۴، مجمع الزوائد: ۱۰۳/۵، بیهقی: ۳۵۰/۹، مسند الشامیین: ۱۴٦/۱.

(۶) صحیح مسلم: کتاب الزهد باب تحریم الریا: ۲۹۸۵، ابن ماجه: ۴۲۰۲.

(۷) احمد: ۴٦٦/۳، ترمذی کتاب التفسیر القرآن باب تفسیرسورة الکهف: ۳۱۵۴، ابن ماجه: ۴۲۰۳، ابن حبان: ۱۱۳۱/۲، المعجم الکبیر: ۷۷۸.

(۸) احمد: ۴۲۸/۵، وشرح السنة للبغوی: ۴۱۳۵ وسنده حسن.

**بدفالي کول هم شرک دي**: :مسند کښې دی حضور ﷺ فرمائيلي دی کوم سړی چه بدفالنی سره د خپل يو کار نه واپس شی هغه مشرک شو.صحابه کرام تپوس اوکړو چه د دې کفاره څه ده؟ حضورﷺ اوفرمائيل دا وئيل ﴿اللهم لاخير الاخيرك ولا طير الاطيرك ولااله غيرك﴾ (١)يعنی ای الله ټولې ښيګړې او نيک فالونه ستاپه لاس کښې دی ستا نه علاوه هيڅ څوک د ښيګړې او نيک فالونو مالک نشته.

**شرک د ميږی دتګ نه هم پټ خيزې دې**: :مسنداحمدکښې دی چه ابوموسی اشعری ﷺ په خپله يوه خطبه کښې فرمائيلي خلقو د شرک نه بچ شئ هغه خود ميږی د تګ نه هم ډير پټ څيز دې. په دې باندې حضرت عبدالله بن حرب اوحضرت قيس بن مضارب اودريدل او ونی وئيل يا خو ته په دې باندې دليل پيش کړه يا مونږ څو او حضرت عمرﷺ ته ستا شکايت کوو. هغوی اوفرمائيل دليل دا دې چه مونږ د حضرت محمد ﷺ نه يوه ورځ خطبه اوريدله فرمائيلې خلقو د شرک نه بچ شئ هغه خو د ميږی د چال نه هم ډيرپټ دې.

**دشرک د بچاؤ طريقه**: : نوچا دهغوی نه تپوس اوکړو بيا ددې نه بچاؤ څنګه کيدې شی؟ ونی فرمائيل دا دعا لولئ ﴿اللهم اناًنعوذبك ان نشرك بك شيئاً نعلمه ونستغفرك مما لانعلم﴾ (٢)دحضرت ابوبکر صديقﷺ نه روايت دې چه نبی کريم ﷺفرمائيلي ﴿الشرك أخفى فيكم من دبيب النمل... ﴾ الخ (٣)
په يويل روايت کښې دی چه داسوال کونکې حضرت صديق اکبرﷺ وو، هغه تپوس کړې وو چه يارسول اللهﷺ شرک خو همدغه دې چه الله ﷻ سره بل څوک راوبلې. په دې حديث کښې د دعا الفاظ دا دی ﴿اللهم انی اعوذبك ان اشرك بك وانا اعلم واستغفرك ممالااعلم﴾ (مسندابويعلی) په ابوداود وغيره کښې دی چه حضرت صديق اکبرﷺ حضور ﷺ ته عرض اوکړو چه ماته څه داسې دعا اوښائي کومه چه زه سحر مابنام او اوده کيدو په وخت کښې لولم نوهغوی اوفرمائيل دا دعا لوله ﴿اللهم فاطر السموات والارض عالم الغيب والشهادة رب كل شيئ ومليكه اشهد ان لااله الاانت اعوذبك من شر نفسی ومن شر الشيطان وشركه﴾ (٤)او په روايت کښې دی چه حضور ﷺ ماته دا دعا اوخودله د دې په آخرکښې دا الفاظ دی.(وان اقترف علیٰ نفسی سوءاو اجره الی مسلم﴾ (٥)

**د الله ﷻ دعذاب نه بې ويرې کيدل نه دی پکار**: فرمان دې چه آيا د دې مشرکانونه د دې خبرې ويره لاړه چه که الله ﷻ ته منظور وی نو د څلورو وارو طرفونه به دوی د الله ﷻ عذاب داسې راګير کړی چه دوی ته به پته هم نه وی لکه چه ارشاد دې ﴿ أَفَأَمِنَ الَّذِينَ مَكَرُوا السَّيِّئَاتِ ﴾الخ.يعنی مکاريانې او بدی کونکی په دې خبره باندې بهادران شو چه دوی به په زمکه کښې ورخښ کړی يا به د داسې ځائ نه عذاب ورکړی چه د دوی به شعور هم نه وی يا به دوی په ملاسته او ناسته راونيسی او يابه ئې رابيدار کړی نو راګيربه ئې کړی. الله ﷻ په يوه خبره کښې هم عاجز نه دې دا خوصرف د هغه رحمت او رافت دې چه ګناه کوې او څه نه وائی. د الله ﷻ فرمان دې چه د دې علاقو ګناهګاران د دې خبرې نه بې خطرې شوی دی چه دوی له به د شپې د هغوی د اوده کيدو په وخت عذاب راشی، يا په رڼرا ورځ بلکه

---

(١) احمد: ٢٢٠/٢ وهوحديث حسن، عبدالله بن وهب فی الجامع: ١١١٠/١.
(٢) احمد: ٤٠٣/٤، مجمع الزوائد ٢٢٣/١٠.
(٣) ابويعلی: ٥٨، ٦١.
(٤) احمد: ٩/١،ابوداوٗد کتاب الادب باب مايقول اذا اصبح: ٥٠٦٧، ترمذی: ٣٣٩٢، حاکم: ٥١٣/١، مسندالطيالسی: ٢٥٨٢.
(٥) احمد: ١٤/١.

خاندې خوشحالیږي به او عذاب به نې راګیر کړي. د الله ﷻ د تدبیر نه بې ویرې کیدل نه دي پکار. داسې خلق سخت نقصان اوچتوي. (١)

| وَمَنِ | اَنَا | عَلٰى بَصِيْرَةٍ | اِلَى اللّٰهِ | اَدْعُوْٓا | سَبِيْلِيْٓ | هٰذِهٖ | قُلْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| او هغه څوک هم | زهٔ | په ښکاره دلیل سره | الله ته | رابلم زهٔ | لار زما ده | دا | ورته اووایه |

تهٔ ورته اووایه | چې دا زما لار ده | زهٔ خلق الله ﷻ ته رابلم ............ زهٔ او

| مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ | وَمَآ اَنَا | وَسُبْحٰنَ اللّٰهِ | اتَّبَعَنِيْ |
|---|---|---|---|
| د مشرکانو نه | او نه یم زهٔ | او پاک دې الله | چې پیروي نې کړې ده زما |

زما ملګرې په دغه نیغه لار روان یو | او الله ﷻ پاک دې | او زهٔ د مشرکانو څنې نهٔ یم

**قوله تعالی:: قُلْ هٰذِهٖ سَبِيْلِيْٓ اَدْعُوْٓا اِلَى اللّٰهِ**

**د الله ﷻ د وحدانیت دعوت.-** الله ﷻ خپل رسول ته چه ټولو انسانانو او پیریانوته لیږلې دې حکم ورکوي چه خلق خبرکړه چه زما مسلك زما طریق او زما سنت دا دې چه د الله ﷻ د وحدانیت دعوت عام کړم. پوره یقین دلیل او بصیرت سره زه هغه طرف ته ټول راغواړم. زما چه څومره منونکې دې هغوی هم دې طرف ته ټول رابلي. په شرعي نقلي او عقلي دلیلونو سره دې طرف ته دعوت ورکوي. مونږ د الله ﷻ پاکوالې بیانوو. دهغه تعظیم تقدیس تسبیح او تهلیل بیانوو. هغه د شریك نه نظیر نه عدیل نه وزیر نه او مشیر نه اود هرقسم کمزورئي او کمي نه پاك منو، نه د هغه اولاد منو او نه د هغه بي بي نه ملګرې او نه هم جنس هغه د دې ټولو خرابو خبرونه پاك او اوچت دې. آسمان او زمکې اود هغې ټول مخلوق د هغه حمد او ثنا کوي خو خلق د هغوی تسبیح باندې نه پوهیږي. الله ﷻ ډیر حلیم او غفور دې.

| رِجَالًا | اِلَّا | مِنْ قَبْلِكَ | وَمَآ اَرْسَلْنَا |
|---|---|---|---|
| سړي | مګر وو | مخکښې ستا نه | اونهٔ وو لیږلې مونږ رسولان |

اومونږ چې ستانه وړاندې (مختلفو) خلقوته صرف سړي پیغمبران لیږلي وو

| اَفَلَمْ يَسِيْرُوْا | الْقُرٰى | مِّنْ اَهْلِ | اِلَيْهِمْ | نُّوْحِيْٓ |
|---|---|---|---|---|
| ایا نو ګنې نهٔ دي ګرځیدلي دوئ | د دې کلو نه | د اوسیدونکو | هغوئ ته | چې وحې به لیږله مونږ |

چاته چې به مونږ وحی کوله | .............. نو ایا دا خلق په زمکه کښې نهٔ ګرځي

| مِنْ قَبْلِهِمْ | الَّذِيْنَ | عَاقِبَةُ | كَانَ | كَيْفَ | فَيَنْظُرُوْا | فِي الْاَرْضِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې مخکښې د دوئ نه وو | د هغه کسانو | انجام | شو | چې څرنګ | چې نظر نې کړې وې | په زمکه کښې |

چې کتلې ئې وې | چې کوم خلق د دوئ نه وړاندې تیر شوی وو | د هغوئ څه انجام شوی وو

| اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ | اتَّقَوْا | لِلَّذِيْنَ | خَيْرٌ | الْاٰخِرَةِ | وَلَدَارُ |
|---|---|---|---|---|---|
| آیا تاسو عقل نهٔ لرئ | چې د تقوی په لور روان شوا | د پاره د هغه کسانو | بهتر دې | د آخرت | او خامخا کور |

او البته د آخرت کور هغو خلقو د پاره ډیر بهتر دې | چې پرهیزګاران دي | نو ایا تاسو نهٔ پوهیږئ

(١) ٧/الاعراف: ٩٧، ٩٩.

قوله تعالی:: وَمَآ اَرۡسَلۡنَا مِنۡ قَبۡلِكَ اِلَّا رِجَالًا

**نبوت اورسالت هم په سړوکښې وو ځوک ښځه نه ده تیره شوې**:-بیان فرمائی چه رسول او نبی هم سړی جوړدی نه چه ښځې. دجمهور اهل اسلام قول دې نبوت ښځو ته چرته نه دې ملاو. د دې آیت مبارك سیاق هم په دې دلالت کوی لیکن د بعضو قول دې چه د خلیل الله حضرت ابراهیم ﷺ بی بی حضرت ساره،دموسی ﷺ موراو د حضرت عیسی ﷺ مور بی بی مریم هم نبیه وې. ملائکو حضرت ساره ته د هغې دخوی اسحاق او نمسی یعقوب زیرې ورکړې دې. دموسی ﷺ مور ته د ښیو ورکولو وحی اوشوه او بی بی مریم ته دحضرت عیسی ﷺ زیرې فرښتې ورکړو. فرښتو بی بی مریم ته اوونیل چه الله ﷻ ته خوښه کړې پاکه کړې او غوره کړې نې د ټول جهان په ښځو باندې، اې مریم د خپل رب حکم منونکې اوسیږه د هغه د پاره سجده کوه او د رکوع کونکو سره رکوع کوه.(۱) د دې جواب دا دې چه دومره خو مونږ منو ځومره چه قرآن پاك بیان کړې دې خو د دې نه د دوی نبوت نه ثابتیږی صرف دومره فرمان یا دومره زیرې یا دومره حکم د یو نبوت د پاره دلیل نه دې.

**داهل سنت والجماعت عقیده**:: د اهل سنت جماعت او ټولو مذهب دا دې چه په ښځوکښې ځوك هم د نبوت والا نشته. اوبه هغوی کښې صدیقات شته لکه د ټولونه د بهترې اوغوره ښځه حضرت مریم په نسبت قرآن پاك کښې ارشاددې﴿ وَاُمُّهٗ صِدِّيۡقَةٌ ﴾(۲)نو که هغه چرې نبیه وه نو په دې مقام باندې به نې هغه مرتبه بیان کړې شوې وه. د آیت مطلب دې چه هم په زمکه کښې اوسیدونکی انسانان نبیان یاتې دی نه چه د آسمان نه به چرته فرښته راکوزیده. او په آیت مبارك کښې دی ﴿وَمَآ اَرۡسَلۡنَا قَبۡلَكَ مِنَ الۡمُرۡسَلِيۡنَ اِلَّاۤ اِنَّهُمۡ لَيَاۡكُلُوۡنَ الطَّعَامَ وَيَمۡشُوۡنَ فِى الۡاَسۡوَاقِ﴾ (۳)یعنی تانه وړاندې ځومره رسولان چه مونږ لیګلی هغوی ټولو به خوراك هم کولو،بازارونوته به نې تګ راتګ هم کولو، هغوی داسې جثې نه وې چه د خوراك کولو نه پاك وو او نه داسې وو چه کله هم مړه کیدونکی نه وو. مونږ د هغوی سره خپلې وعدې پوره کړې هغوی اوهغوی سره چه ځوك مونږ غوښتل نجات مو ورکړو، او مسرف خلق خو هلاك کړل.(۴) دغه شان په یو بل آیت کښې دی ﴿قُلۡ مَا كُنۡتُ بِدۡعًا مِّنَ الرُّسُلِ﴾ (۵)یعنی زه چرته رومبې رسول خو نه یم؟

**قران پاك کښې د اهل قری نه مراد ښار والا دی**::یادساتئی چه د اهل قری نه مراداهل ښار دی نه چه کلی وال، هغوی خو ډیر کوګ طبیعت او بد اخلاق وی. مشهوره او معروفه خبره ده چه د ښار خلق ډیر نرم طبع او خو اخلاقو مالکان وی، دغه شان د لرې کلی وال اود غاړو اوسیدونکی هم عموماً هم داسې کاګه واګه وی.قرآن پاك فرمائی ﴿اَلۡاَعۡرَابُ اَشَدُّ كُفۡرًا وَّنِفَاقًا﴾ (۶)په ځنګلونوکښې اوسیدونکی بدوان په کفر اونفاق کښې ډیرسخت دی. حضرت قتاده رحمه الله هم دغه مطلب بیانوی، ځکه چه د ښاریو په خلقو کښې علم او حلم ډیر وی.

په یوحدیث کښې دی چه کلی وال او باندچیانونه یو کس د حضور ﷺ په خدمت کښې هدیه پیش کړه. دغوی ﷺ هغه ته بدله ورکړه خو هغه دا ډیره کمه اوګنړله. حضور ﷺ هغه ته نوره هم ورکړه او تردې نې درکړه چه هغه خوشحاله شو بیانې اوفرمائیل چه زما خو زړه غواړی چه سوا د قریشو، انصارو، ثقفی

---

(۱) ۳/آل عمران: ۴۲-۴۳.
(۲) ۵/المائدة: ۷۵.
(۳) ۲۵/الفرقان: ۲۰.
(۴) ۲۱/الانبیاء:۸-۹.
(۵) ۴۶/الاحقاف: ۹.
(۶) ۹/التوبة: ۹۷.

او دوسى خلقو نه بغير د بل چا تحفه هډو قبوله نه كړم.([1])په يو حديث كښې د حضور ﷺ فرمان دې چه هغه مؤمن چه خلقو سره ملاويږى اود هغوى په تكليفونو صبر كوى ([2])هغه د دغه سړى نه بهتر دې چه نه خلقو سره ملاويږى او نه دهغوى په تكليفونو صبر كوى. دا دروغ ګڼرونكى ولې په ملك كښې ګرځى راګرځى نه؟ چه د خپل خان نه د مخكينو د دروغ ګڼرونكو حال اووينى اود هغوى په انجام باندې غور اوكړى. لكه چه فرمان الهى دې﴿اَفَلَمْ يَسِيْرُوْا فِى الْاَرْضِ فَتَكُوْنَ لَهُمْ قُلُوْبٌ يَّعْقِلُوْنَ بِهَآ اَوْ اٰذَانٌ يَّسْمَعُوْنَ بِهَا ۚ فَاِنَّهَا لَا تَعْمَى الْاَبْصَارُ وَلٰكِنْ تَعْمَى الْقُلُوْبُ الَّتِىْ فِى الصُّدُوْرِ﴾([3])آيا هغوى دزمكې سيل (سير)نه دې كړې چه د هغوى زړونه پوهه شوې وې. د هغوى غوږونو اوريدلې وې اود هغوى سترګو ليدلې وې چه د دوى په شان د ګناهګارانو څه حشر اوشو؟ هغوى د نجات نه محروم پاتې كيږى د الله ﷻ عذاب هغوى تباه كوى.

**نجات اخروى دنجات دنياوى نه بهتر دې**::عالم آخرت د هغوى د پاره ډير بهتر دې څوك چه په احتياط سره ژوند تيروى.دلته هم خلاصې بيامومي اوهلته هم.اودهغه ځائ نجات ددې ځائ د نجات نه ډير بهتر دې.د الله ﷻ وعده ده ﴿اِنَّا لَنَنْصُرُ رُسُلَنَا﴾([4])مونږ دخپلو رسولانواوپه هغوى ايمان راوړونكو سره په دې دنياكښې هم امداد كوو اودقيامت په ورځ به هم د هغوى امدادكوو.په هغه ورځ به ګواهان اودريږى، د ظالمان عذرونه به بې فائدې وى،په هغوى به لعنت راوريږى اودهغوى دپاره به ډيرخراب كور وى. د كوراضافت ئې دآخرت طرف ته كړې لكه چه صلوة اولى اومسجدجامع اوعام اول اويارحة الاولى اويوم الخميس كښې هم داسې اضافت دې. په عربى شعرونوكښې هم داسې اضافت په كثرت سره راغلې.

| اَنَّهُمْ | وَظَنُّوْٓا | اِذَا اسْتَيْـَٔسَ الرُّسُلُ | حَتّٰی | |
|---|---|---|---|---|
| چې بيشكه دوئ ته | او ګمان اوكړو دوئ | چې كله نااميده شو رسولان دخلقونه | تردې پورې | |
| چې اوس | او د دوئ ګمان اوشو | | تردې چې كله پيغمبران نااميده شول | |
| نَّشَآءُ | مَنْ | فَنُجِّيَ | جَآءَهُمْ نَصْرُنَا | قَدْ كُذِبُوْا |
| چې غواړومونږ | هغه څوك | نو بيا بچ كوومونږ | نوورغئ هغوئ ته امداد زمونږ | دروغ ونيلى شوى وو |
| انجات مو وركړو | نوچاته چې مونږ غوښتل | | نوهغوى ته زمونږ مدد راغلو | دوئ دروغژن كړې شوى دى |
| | | عَنِ الْقَوْمِ الْمُجْرِمِيْنَ | بَأْسُنَا | وَلَا يُرَدُّ |
| | | د قوم مجرم نه | عذاب زمونږ | اونۀ شي واپس كولې څوك |
| | | | | اوزمونږ عذاب د مجرمانو نه نۀ واپس كيږى |

**قوله تعالى:: وَلَا يُرَدُّ بَأْسُنَا عَنِ الْقَوْمِ الْمُجْرِمِيْنَ**

**د انبياء د مخالفت انجام:**-د الله ﷻ ارشاد دې چه د هغه امداد د هغه په رسولانو باندې په پوره موقعه باندې نازليږى.كله چه ددنيا تكليفونه زيات شى مخالفت مخامخ شى،اختلاف كله زياتيږى دښمن چه كله پوره كيږى اودالله ﷻ انبياء كرام د هرطرف نه راګير كړى نو زر دالله ﷻ امداد رارسى. ﴿كُذِبُوْا﴾

[1]) ترمذى كتاب المناقب باب فى ثقيف وبنى حنيفة :۳۹۴۵، ابوداؤد: ۳۵۳۷، نسائى: ۳۷۹۰.

[2]) ترمذى :۲۵۰۷، ابن ماجه: ۴۰۳۲، بيهقى: ۸۹/۱۰، ابن ابى شيبه:۲۹۳/۵، احمد:۴۳/۲،شعب الايمان:۱۲۷/۷، الادب المفرد:۳۸۸.

[3]) ۲۲/الحج: ۴۶.

[4]) ۴۰/غافر:۵۱

او(كُذِبُوا) دواړه قراءتونه دي.دحضرت عائشه رضي الله عنها قراءت د ذال په تشديد دي. په بخاري شريف كښې دي چه عروه بن زبير رضي الله عنه دحضرت عائشه رضي الله عنها نه تپوس اوكړوچه دالفظ (كُذِّبُوا)دې يا (كُذِبُوا)دې؟ حضرت عائشه رضي الله عنها اوفرمائيل (كُذِّبُوا) دې. هغوى اووئيل چه بيا خو دا معنى شوه چه رسولانو ګمان اوكړو چه هغوى دروغ اوګڼړلې شو نو دا د ګمان كومه خبره وه دا خو يقينى خبره وه چه هغوى به دروغ ګڼړلې شو. هغې اوفرمائيل چه بې شكه دا يقينى خبره وه چه هغوى به د كافرانود طرف نه دروغ ګڼړلې شو ليكن هغه وخت وهم راغلو چه ايماندار امتيان هم په دې زلزله كښې واچولې شو اودغه شان د هغوى په امداد كښې روستو والې اوشو چه د رسولانو په زړه كښې راغله چه غالباً اوس خو به زمونږ خپله ډله هم مونږ دروغ ګڼړى. بيا د الله ﷻ امداد راغلو اوهغوى ته غلبه اوشوه. تاسو دومره خو خيال كوئى چه(كُذِبُوا) څنګه تيټ كيدې شى.نعوذبالله انبياءعليهم السلام د الله ﷻ په نسبت دا ګمان كولې شى چه هغوى ته درب د طرف نه دروغ اووئيلې شو([1])دحضرت ابن عباس رضي الله عنه په قراءت كښې(كُذِبُوا) دى. هغوى به د دې په دليل كښې(حَتّٰى يَقُوْلَ الرَّسُوْلُ) ([2]) لوستلو.تر دې چه انبياء او ايماندارانو اووئيل د الله ﷻ امداد چرته دې. ياد ساتئى د الله ﷻ امداد بالكل نزدې دې. حضرت عائشه رضي الله عنها به د دې سخت انكار كولو او فرمائيلې چه رسول الله ﷺ سره الله ﷻ څومره وعدې كړې وې هغوى ﷺ ته پوره يقين وو چه هغه ټولې يقينى او حتمى دى او ټولې به پوره كيږى. د آخرى وخت پورې كله هم الله دې نكړى دا وهم هډو پيدا شوې نه دې چه د الله ﷻ به يوه وعده غلطه ثابته شى يا ممكن دى چه غلطه شى يا به پوره نشى. اودا خبره ده چه په انبياء كرام باندې برابر بلاګانې او ازمينښتونه راغلى تر دې چه د هغوى په زړونوكښې دا خطره پيدا شوې چه چرته زمونږ منونكى هم په مونږ باندې بدګمان نشى او مونږ دروغ اونه ګڼړى. يوسړې قاسم بن محمد له راغى او وائى چه محمد بن كعب قرظى(كُذِبُوا) لولى. نوهغوى اوفرمائيل چه ماد رسول الله ﷺ د بى بى حضرت عائشه رضي الله عنها اوريدلى چه هغې به (كُذِّبُوا) لوستلو.يعنى د هغوى منونكو هغوى دروغ اوګڼړل،نويوقراءت خو تشديدسره دې بل تخفيف سره دې. بيا د دې په تفسيركښې خو د ابن عباس رضي الله عنه نه مروى دى كوم چه پورته تيرشو. د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه نه مروى دى چه هغوى دا آيت داسې اولوستلو نو وئى فرمائيل چه هم دغه خو هغه دى چه ته ئې خراب ګڼړې. دا روايت د هغه روايت خلاف دې كوم چه د دې دواړو بزرګانونه نورو روايت كړې دې. په دې كښې دى چه ابن عباس رضي الله عنه اوفرمائيل كله چه رسول نااميد شوچه د هغوى قوم به د هغوى منى او قوم دا اوګڼړل چه نبيانو هغوى ته دروغ وئيلى نو هم هغه وخت د الله ﷻ امداد راورسيدو او چه كوم الله ﷻ غوښتل نجات ئې وركړو.دغه شان تفسير د نورو نه هم مروى دې. يو قريشى خوان حضرت سعيد بن جبير رحمه الله ته اووئيل چه حضرت مونږ ته اوښايه چه دا لفظ څنګه اولولو. مانه خو د دې لفظ په وجه ممكن دى چه د دې صورت لوستل پاتې شى. هغوى اوفرمائيل واوره د دې مطلب دا دې چه انبياء دې سره نااميده شو چه دهغوى قوم به داګمان اوكړى او قوم دا ګڼړل چه دهغوى انبياءغلط وئيلى. دې

اوريدو سره حضرت ضحاك بن مزاحم ډير خوشحاله شو او وئى فرمائيل چه د نن په شان جواب ما د يو ذى علم نه نه دې اوريدلې. كه زه د دې خائې نه يمن ته هم تلې ووم او داسې جواب مې اوريدلې وو نو ما به هغه هم آسان ګڼړلو.مسلم بن يسار رحمه الله هم چه د هغوى دا جواب واوريدو نو پاسيدو او هغوى سره ترغاړې وتو او وئى وئيل چه الله ﷻ دې ستا پريشانئى هم داسې لرې كړى څنګه چه تا زمونږ

([1]) صحيح بخارى كتاب التفسير باب قوله (حتى إذا استيئس الرسل): ۴۶۹۵-۹۶.
([2]) ۲/البقرة: ۲۱۴

پریشانئی لرې کړي. ډېرو نورو مفسرینو هم دغه مطلب بیان کړې دې. او د مجاهد رحمه الله قراءت خو د ذال په زبر سره دې ﴿كُذِبُوا﴾ او بعض مفسرین فاعل ﴿وَظَنُّوا﴾ فاعل مؤمنان ښائی او بعض کافران یعنی کافرانو وئیلی چه بعض مؤمنانو دا گمان اوکړو چه رسولانو سره د امداد کومه وعده وه په هغې کښې هغوی درغژن ثابت شو. عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی رسول نااميده شو یعنی د خپل قوم د ایمان نه اود الله ﷻ په امداد کښې توقف اولیدو نودهغوی قوم گمان اوکړو چه هغوی ته د دروغو وعدې ورکړې شوې وې. نودا دواړه روایتونه د دې دواړو بزرگانو صحابه کرامو نه مروی دی او حضرت عائشه رضی الله عنها د دې نه صفا انکار کوی. ابن جریر رحمه الله هم د عائشه صدیقه رضی الله عنها د قول طرفداری کوی اود بل قول تردید کوی او دغه ناخوښوی او ردکوی. والله اعلم.

| | | |
|---|---|---|
| لَقَدْ كَانَ | فِيْ قَصَصِهِمْ | |
| بیشکه دی | په قیصو ددوئ کښې | | |
| بیشکه دهغوئ په قصو کښې د عقلمندو خلقو | | |

| عِبْرَةٌ | لِّاُولِي الْاَلْبَابِ ط | مَا كَانَ حَدِيْثًا | يُّفْتَرٰى | وَلٰكِنْ | تَصْدِيْقَ |
|---|---|---|---|---|---|
| عبرت | دپاره دخاوندانو د عقل | نهٔ دی | دا خبرې | دخان نه جوړې کړې شوې | خولیکن | تصدیق دی |
| دپاره لوئي عبرت دې | ............دا (قرآن) د دروغو جوړ کلام نهٔ دې | بلکه دا د هغه (کتاب) تصدیق کوی | | | |

| الَّذِيْ | بَيْنَ يَدَيْهِ | وَتَفْصِيْلَ | كُلِّ شَيْءٍ | وَّهُدًى | وَّرَحْمَةً |
|---|---|---|---|---|---|
| دهغه څهٔ | چې مخکښې راغلی دی ددهٔ نه | او تفصیل دې | د هر څیز | او هدایت دې | او رحمت دې |
| کوم چې د دې نه وړاندې وو | او د هر (دینی) څیز تفصیل کوی | ......او مومنانو د پاره | | | |

| لِّقَوْمٍ | يُّؤْمِنُوْنَ ع |
|---|---|
| د پاره د هغه قوم | چې ایمان راوړی |
| هدایت او رحمت دی | |

قوله تعالى: لَقَدْ كَانَ فِيْ قَصَصِهِمْ عِبْرَةٌ لِّاُولِي الْاَلْبَابِ ط

**تیرشوی واقعات د عبرت اونصیحت سبب دی**: دانبیاء کرامو واقعات د مسلمانانو د نجات او کافرانو د هلاکت قصې دعقل د خاوندانودپاره ډېر لوئ عبرت او نصیحت دې. دا قرآن کریم بناوټی نه دې بلکه د وړاندینو آسمانی کتابونو د تصدیق دلیل دې. په دې کښې چه کومې حقیقی خبرې د الله ﷻ دی د هغې تصدیق کوی اوکوم چه تحریف او تبدیل شوې دې هغه چهانړ کوی. کومې خبرې چه دهغوی باقی پاتې کولو وې هغه او چه کوم احکام منسوخ شوی هغه بیانوی. هر یو حلال او حرام خوښ او مکروه کولاؤ کولاؤ بیانوی. طاعات، واجبات، مستحبات، محرمات او مکروهات وغیره بیانوی. اجمالی او تفصیلی خبرې ښائی.د الله ﷻ عزوجل صفات بیانوی او بندیگانو چه کومې غلطې د خپل خالق باره کښې کړی دی د هغې اصلاح کوی، مخلوق د هغې نه منع کوی چه هغوی د الله ﷻ یوصفت په مخلوق کښې ثابت کړی.نو دا قرآن کریم د مؤمنانودپاره رحمت او هدایت دې. دهغوی زړونه د ضلالت نه په هدایت، دروغونه په ربنتیاؤ، بدونه د نیکو په لار لگوی.اود رب العباد نه د دنیا او آخرت ښیگړې حاصلوی. زمونږ هم دعا ده چه الله ﷻ مونږ ته هم په دنیا او آخرت کښې هم داسې مؤمنانو سره کړی او د قیامت په ورځ چه ډېر مخونه به سپین وی او ډېر به تور وی مونږ هم مؤمنانوسره په نورانی مخونو

کنبې شامل کړې. امین.الحمد الله دسورة یوسف تفسیرختم شو.دالله ﷻ شکردې اوهم هغه د تعریفونو لائق دي او هم د هغه نه مونږ امداد غواړو.

| اياتونه | سورة الرعد مدنية وهي ثلاث واربعون اية وست ركوعات | رکوع ګاني |
|---|---|---|
| ۴۳ | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ<br>شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زيات رحم کونکي دي | ۶ |

| الٓمّٓرٰ ۚ تِلۡكَ اٰيٰتُ الۡكِتٰبِ ؕ وَالَّذِىۡۤ اُنۡزِلَ اِلَيۡكَ مِنۡ رَّبِّكَ |
|---|
| الٓ م ر \| دا \| ایتونه \| د کتاب دی \| او هغه څه \| چې نازل کړې شوې دی \| تاته \| د طرفه د رب ستا نه |
| الف لام میم را \| دا (د قرآن) دکتاب ایتونه دی \| اوستا د رب د طرفه څه چې په تانازل شوی دی |
| الۡحَـقُّ وَلٰـكِنَّ اَكۡثَرَ النَّاسِ لَا يُؤۡمِنُوۡنَ ۞ |
| حق دی \| خولیکن \| زیات خلق یې \| نه مني \| |
| هغه بیخی رښتیا دی \| خو زیات خلق ایمان نه راوړی \| |

قوله تعالى:: وَالَّذِىۡۤ اُنۡزِلَ اِلَيۡكَ مِنۡ رَّبِّكَ الۡحَـقُّ

**الله ﷻ دطرفنه نازل شوې ټولې خبرې حق دي:**-دسورتونو په شروع کنبې کوم حروف مقطعات راخی دهغې پوره تشریح د سورة بقره دتفسیرپه شروع کنبې شوې ده اومونږ داهم ونیلی دی چه د کوم سورة په شروع کنبې دا حروف راشی هلته عموماً دابیان کیږی چه قرآن د الله ﷻ کلام دې په دې کنبې هیڅ شك شبه نشته. دلته هم د دې حروفو نه پس فرمانیلی دی دا د کتاب یعنی قرآن آیاتونه دی بعضو ونیلی چه دکتاب نه مراد تورات او انجیل دې خو دا صحیح نه دی. بیا هم په دې باندې عطف اچولو سره اود دې پاك کتاب صفتونه ئې بیان کړی چه داسراسر حق دې اود الله ﷻ د طرفنه په تا باندې نازل شوې دې. ﴿الحق﴾ خبر دې د دې مبتداء اول بیان شوه یعنی ﴿الَّذِىۡۤ اُنۡزِلَ اِلَيۡكَ﴾خود ابن جریر رحمه الله خوښې کړې شوې قول دا دې چه واؤ زائده دې یا عاطفه دې اود صفت په صفت باندې عطف دې لکه چه مونږ اول ونیلی دی بیا د دې په شهادت کنبې دشاعرقول راوړلې دې. بیانې اوفرمانیل چه سره دحق کیدونه بیا هم اکثر خلق ایمان قبلونکی نه دی. یعنی د دې حقانیت واضح دې خود هغوی ضد او نه منل او سرکشی به هغوی د ایمان طرف ته متوجه کیدو ته نه پریږدی.

| اَللّٰهُ الَّذِىۡ رَفَعَ السَّمٰوٰتِ |
|---|
| \| الله هغه ذات دی \| چې پورته ئې کړل \| اسمانونه |
| \| الله ﷻ هغه ذات دی \| چې اسمانونه |
| بِغَيۡرِ عَمَدٍ تَرَوۡنَهَا ثُمَّ اسۡتَوٰى عَلَى الۡعَرۡشِ وَسَخَّرَ |
| بغیر د ستنو نه \| چې تاسو وینئ هغې لره \| بیا \| ئې قرار اونیوو په تخت باندې \| او پابند ئې کړل |
| ئې بغیر دستنو نه پورته کړی دی \| تاسو ئې وینئ ابیا په عرش باندې په خپل شانې لائق سره برابر شو |
| الشَّمۡسَ وَالۡقَمَرَ ؕ كُلٌّ يَّجۡرِىۡ لِاَجَلٍ مُّسَمًّى ؕ يُدَبِّرُ الۡاَمۡرَ |
| نمر \| او سپوږمۍ \| هر يو \| روان دی \| - دنیټې مقررې پورې \| تدبیر کوی (الله) \| د هر کار |
| اونمر او سپوږمۍ ئې تابع کړی دی \| اوهر یو تر مقرر وخت پورې روان دې \|هم هغه د هرې خبرې انتظام کوی |

| يُفَصِّلُ | الْاٰيٰتِ | لَعَلَّكُمْ | بِلِقَآءِ | رَبِّكُمْ | تُوْقِنُوْنَ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| په تفصيل سره بيانوي | نښې | د پاره د دې چې تاسو | په ملاقات | د رب خپل | يقين اوکړئ |

| هغهٔ خپلې نښې په تفصيل سره بيانوي \| دې د پاره چې خپل رب ته د حاضريدو يقين اوکړئ \| |
|---|

قوله تعالى:: اَللّٰهُ الَّذِيْ رَفَعَ السَّمٰوٰتِ

**د آسمان او عرش پيدائش:-** دالله ﷻ د قدرت کمال او رباني سلطنت او عظمت ته اوګوره چه بغير د ستنو نه ئې آسمان اوچت اولوړاوقائم ساتلې دې.د زمکې نه آسمان الله ﷻ څنګه اوچت کړې دې او صرف په خپل حکم ئې اودرولې دې.چه د دې انتهاء ته څوک هم نشي رسيدلې.ددنيا آسمان ټوله زمکه اوکوم څه چه د دې نه ګيرچاپيره دی اوبه او هوا وغيره ټول ئې احاطه کړې دی او د هر طرف نه يو شان اوچت دې. د زمکې نه د پنځو سوو کالو په فاصله دې.اودهر يوخایٔ نه هم دومره اوچت دې. بيا هم : هغې خپل پيروالې او مينځ هم دپنځو سووکالو په فاصله دې.بيادونم آسمان هم داآسمان راګيرکړې دې اود رومبی نه د دونم پورې فاصله هم پنځه سواکاله ده.دغه شان دريم،بيا څلورم، بيا پنځم،بيا شپږم او بيا اووم لکه چه د الله ﷻ ارشاد دې.﴿اَللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ وَّمِنَ الْاَرْضِ مِثْلَهُنَّ﴾يعنى الله ﷻ اووه آسمانونه پيداکړی دی او هم د دې په مثال زمکې.په حديث شريف کښې دی اووه آسمانونه او په دې کښې د دې په مينځ کښې چه څه دی هغه د کرسئ په مقابله کښې داسې دی لکه چه په کولاو ميدان کښې چه يوه حلقه وی[1]اوکرسئ د عرش په مقابله کښې داسې ده چه د عرش قدر د الله ﷻ نه بل هيڅ چا ته معلوم نه دې.[2]

بعض سلفو بيان کړې دې چه دعرش نه د زمکې پورې فاصله پنځوس زره کاله ده. عرش د سرو ياقوتو دې. بعض مفسرين وائی چه د آسمان ستنې خو شته مګر ليدلې نشی ليکن اياس بن معاويه فرمائی آسمان په زمکه باندې د ګنبد په شان دې يعنى بغير د ستنودې.دقرآن د طرز عبارت لائق هم دغه خبره ده.او آيت ﴿وَيُمْسِكُ السَّمَآءَ اَنْ تَقَعَ عَلَى الْاَرْضِ﴾نه هم دا ظاهر ده.نو﴿ترونها﴾ نه به د دې نفي تائيد کيږی. يعنى آسمان بغير ستنو دومره اوچت دې اوتاسو ئې پخپله وينئ چه دا دقدرت کمال د اميه بن ابوالصلت په اشعارو کښې دی د چا د اشعارو باره کښې چه په حديث شريف کښې چه د هغه اشعارو ايمان راوړلې دی اود هغه زړه کفر کوی[3]او دا هم روايت دې چه دا اشعار د حضرت زيد بن عمرو بن نفيل ﷺ دی په کوم کښې چه دی:

وانت الذي من فضل من ورحمة — بعثت الى موسى رسولا مناديا
فقلت له فاذهب وهارون فادعوا — الى الله فرعون الذي كان طاغيا
وقولا له هل انت سويت هذه — بلا وتد حتى استقلت كما هيا
وقولا له هل انت رفعت هذه — بلا عمد اوفوق ذلك بانيا
وقولا له هل انت سويت وسطها — منيرا اذا ما جنك الليل هاديا
وقولا له من انبت الحب في الثرى — فيصبح منه العشب يهتز رابيا
وقولا له من يرسل الشمس غدوة — فيصبح ما مست من الارض ضاحيا
ويخرج منه حبه في رؤسه — ففي ذاك ايات لمن كان واعيا

[1] الطبرى:٥/٣٩٩.
[2] ابن جرير.
[3] السلسة الضعيفة:١٥٤٦.

یعنی ته هم هغه الله ﷻ نې چا چه په خپل فضل او کرم سره خپل نبی موسیٰ ؑ سره د هارون ؑ د فرعون طرف ته رسول جوړ کړو وئی لیګلو. هغوی ته نې اوفرمائیل چه د دې سرکش د قائل کولو د پاره هغه ته اووایه چه دا اوچت او لوړ بغیر ستنو آسمان تا جوړ کړې دې؟ او په دې نمر سپوږمئی او ستوری تاپیدا کړی؟ د خاورونه دانه راټوکول بیا په هغه بوټو کښې وړې پیدا کول او په هغې کښې دانې پخونکی ته نې؟ آیا د قدرت دا زبردست نشانونه د یو ژور انسان د پاره د الله ﷻ د هستئی دلیل نه دې.

**اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ مطلب::** بیا الله ﷻ په عرش باندې جلوه افروز شو. ددې تفسیر په سورة اعراف کښې تیرشوې دې، او داهم بیان کړې شو چه څنګه دې هم هغه شان نې پریږدنې. کیفیت تشبیه تعطیل او تمثیل نه د الله ﷻ ذات پاك دې بزرګ دې او اوچت دې. نمر او سپوږمئی د هغه په حکم سره په ګردش کښې دی او د مناسب وخت یعنی قیامته پورې به برابر دغه شان لګیاوی. لکه چه ارشاد دې نمر برابر په خپل ځائ روان دې. د هغه د ځائ نه مراد د عرش لاندې دې چه د زمکې لاندې بل طرف ته ملحق دې دې او ټول ستورې تر دې ځائ راورسیدل او د عرش نه نور هم لرې کیږی څکه چه صحیح خبره په کومه چه ډیر دلیلونه دی همدغه ده چه هغه قبه یعنی ګنبد دې. متصل عالم د باقی آسمانونو په شان محیط نه دې، څکه چه د دې ستنې دی اود هغې اوچتونکی دی. او دا خبره مستدیر تاویدونکی د آسمان په تصور کښې نه شی راتلې. څوك چه غورکوی هغه به نې رښتیاګنړی. د آیاتونو او احادیثو کتونکې به په دې نتیجه رسی ﴿ولله الحمد والمنة﴾

**دشمس وقمر ذکرکولو وجه::** صرف د نمر او سپوږمئی ذکر دلته په دې وجه دې چه په اوو واړو سیارو کښې لوئ او روښانه هم دا دوه دی.نو چه کله دا دواړه مسخر دی نو نور خو په طریقه اولی مسخر دی لکه چه نمر او سپوږمئی ته سجده مه کوه نه مراد ستورو ته هم سجده نه کول دی.بیاپه نورو روایتونو کښې تصریح موجوده. ارشاددې ﴿ وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ وَالنُّجُوْمَ مُسَخَّرٰتٍۭ بِاَمْرِهٖ ﴾یعنی نمر سپوږمئی اوستوری د هغه په حکم مسخر دی هم هغه پیداکونکې او امرکونکې دې،هم هغه د برکت خاوند دې، هم هغه رب العالمین دې.هغه آیاتونه د خپل وحدانیت په دلیلونویاندې په تفصیل سره بیانوی، دې د پاره چه تاسو د هغه د توحید قائل شئی او هغه اومنئی چه هغه به تاسو فنا کوی او بیا به مو ژوندی کوی.

| وَهُوَ الَّذِیْ | مَدَّ | الْاَرْضَ | وَجَعَلَ | فِیْهَا | رَوَاسِیَ | وَاَنْهٰرًا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او هغهٔ هغه ذات دې | چې خوره نې کړه | زمکه | اوپیدا نې کړل | په دې کښې | غرونه | او نهرونه |
| اوالله ﷻ هغه ذات دې | چې زمکه نې خوره کړې ده | اوپه دې کښې نې غرونه اودریابونه پیدا کړې دی | | | | |

| وَمِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ | جَعَلَ | فِیْهَا | زَوْجَیْنِ اثْنَیْنِ | یُغْشِی | الَّیْلَ | النَّهَارَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او د هر قسم میوو نه | هغهٔ پیدا کړې | په دې کښې | جوړې | دوه | هغهٔ پټوی | شپه | په ورځ باندې |
| او په دې کښې نې هرقسم میوې جوړې جوړې پیدا کړې دی | او هغهٔ شپه د ورځې په رڼا کښې پټوی | | | | | |

| اِنَّ | فِیْ ذٰلِكَ | لَاٰیٰتٍ | لِّقَوْمٍ | یَّتَفَكَّرُوْنَ | وَفِی الْاَرْضِ |
|---|---|---|---|---|---|
| بې شکه | په دې ټولوخیزونو کښې | خامخانښې دی | دپاره دهغه قوم | چې فکرکوی | اوپه زمکه کښې |
| په دې خبرو کښې د فکر کوونکو خلقو دپاره نښې دی | اوپه زمکه کښې | | | | |

| قِطَعٌ | مُّتَجٰوِرٰتٌ | وَّجَنّٰتٌ | مِّنْ اَعْنَابٍ | وَّزَرْعٌ | وَّنَخِیْلٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| حصې دی | چه جوختې دی دیو بل سره | اوباغونه | د انګورو | او فصلونه | او ونې د کهجورو |
| مختلفې ټکړې دی | اچې یوبل سره ملاؤ دی | اود انګورو باغونه دی | او پټی دی او کهجورې دی | | |

| صِنْوَانٌ | وَّغَيْرُ صِنْوَانٍ | يُّسْقٰى | بِمَآءٍ وَّاحِدٍ |
|---|---|---|---|
| چې خيني ديوبيخه ګنړې راختلي دي اوخيني خان خان ته بيخ لري اتول خړوبيږي ا په يو قسم اوبو سره | | | |
| دبعضو ډير بناخونه دي او بعضې د يوې تنې دی ا ټول په يو قسم اوبو باندې خړوبيږي | | | |
| وَنُفَضِّلُ بَعْضَهَا عَلٰى بَعْضٍ فِى الْاُكُلِ ۭ اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ | | | |
| اوغوره کوو مونږ اخيني د هغې نه ا په خينو باندې ا په خوند کښې ا بې شکه ا په دې ټولوخيزونو کښې | | | |
| خوبيا هم مونږ د يوبل نه په خوراک کښې غوره پيدا کړي دی ا ........بيشکه په دې ټولو | | | |
| لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ۝ | | | |
| خامخانبې دي ادپاره دهغه قوم ا چې دعقل نه کاراخلي ا | | | |
| خبرو کښې د هغه خلقو دپاره نبښې دي چې د عقل نه کار اخلي ا | | | |

**قوله تعالی:: وَهُوَ الَّذِيْ مَدَّ الْاَرْضَ**

**د الله ﷻ د کامل قدرت بيان:-** په پورتنې آيت کښې دعالم علوی بيان وو. دلته عالم سفلي ذکر روان دې، زمکه په اوږدوالي او پلنوالي سره الله ﷻ خوره کړه. په دې کښې مضبوط غرونه هم هغه ورخښې کړی دی.په هغې کښې چينې اودريابونه هم هغه روان کړی دی.ددې دپاره چه مختلف شکلونواو صورتونو مختلف رنګونو اوخوندونوميوې ګلونه اوونې خروب شي.جوړه جوړه ميوې هغه پيدا کړې، خوږې ترخې وغيره، شپه ورځ برابر يو بل سپې برابر خي راخي. د يو راتلل د بل تلل دی. نو په دې مکان سکان او زمان ټولوکښې تصرف هم د دې قادر مطلق دې. د الله ﷻ دې نبنوته د ده حکمتونو ته اود هغه دلائلو ته چه په غور اوګورې هغه هدايت بياموندې شي. د زمکې ټکړې يو خای ملاو شوی دی بيا قدرت ته اوګوره چه يوه ټکړه خو پيداوار کوی او بله هيڅ نه کوی. ديوخای خاوره سره،د بل خای سپينه، زيړه، توره کانړژنه، نرمه خوړه شکلنه يو صفا غرض چه دا هم د خالق د قدرت نبنې دی او بنانی چه فاعل خودمختار مالك الملك لاشريك يو هم هغه الله ﷻ چه خالق کل دې نه د هغه نه سوا څوك معبود شته نه پالونکې﴿ وَزَرْعٌ وَّنَخِيْلٌ ﴾که چرې په ﴿ جَنّٰتٌ ﴾باندې عطف واچوې نودپيش نه مرفوع لوستل پکار دی. او﴿ اَعْنَابٍ ﴾ باندې عطف اچولو سره زير سره مضاف اليه منلو سره مجرور لوستل پکار دی. د ائمه د جماعت دواړه قراءتونه دی. ﴿ صِنْوَانٌ ﴾ وانی يوونې ته چه ډيرې تنې او بناخونه نې وی لکه انار انخر او بعض کهجورې﴿غَيْرُ صِنْوَانٍ﴾ کومې چه داسې نه وی هم يوه تناوی لکه نورې ونې.

**ترهٔ ته هم صنوب وئيلې کيږی::** هم د دې نه د انسان تره ته﴿صنوالاب﴾ وانی. په حديث کښې هم راغلي دی چه حضور ﷺ حضرت عمر ته اوفرمائيل چه تاته معلومه ده چه د انسان تره په مثال د پلار وی. [1] براء ﷺ فرمانی په يوه جرړه يعنی يوه تنا کښې ډير بناخونه او د کهجورو ونې وی او په يوه تنا باندې هم يوه وی. هم دغه ﴿ صِنْوَانٌ ﴾ او غير ﴿ صِنْوَانٌ ﴾ دې. هم دغه قول د نورو بزرګانو هم دې. د ټولو د پاره اوبه يو وی يعنی د باران خو د ميوو په کمې زياتې کښې ډير فرق وی.څه خوږې وی څه تروې، په حديث کښې هم دا تفسير دې اوګورئی ترمذی شريف[2]دقسمونو اوجنسونواختلاف درنګ اختلاف،د بونی اختلاف د خوند اختلاف، د پانړو اختلاف د تازګئی اختلاف يو ډير خوږ بل ډير تريو، يو ډير خوندناك بل ډير بې مزې، د چا رنګ زيړ د چا رنګ سور د چا سپين او د چا تور. دغه شان په تازګئی

[1] صحيح مسلم کتاب الزکوة باب فی تقديم الزکاة ومنعها: ۹۸۳، ابوداؤد: ۱٦٦۳،بيهقی:۱٦۳/٦، دارقطنی:۱۲۳/۲.

[2] ترمذی کتاب تفسير القرآن باب ومن سورة الرعد: ۳۱۱۸.

او ميووكښې هم اختلاف دې. او د غذا په اعتبار سره تولې يو شان دى. د قدرت دا عجائب د يو هوښيار سړى د پاره عبرتونه دى. او فاعل مختار د الله ﷻ د قدرت يو لوئ او زبردست معلومات وركوى هغه چه څه غواړي نو كوى. د عقلمندودپاره دا آياتونه دا نښې نښانې كافي وافي دى.

| | | |
|---|---|---|
| وَإِنْ | تَعْجَبْ | فَعَجَبٌ |
| او كه چرې ته تعجب كوې | نو ډيره عجيبه ده | |
| او كه ته تعجب كوې نود دوى په خبره | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قَوْلُهُمْ | ءَإِذَا | كُنَّا | تُرَابًا | ءَإِنَّا | لَفِي خَلْقٍ | جَدِيدٍ |
| وينا د دوى | آيا كله چې | شو مونږ | خاورې | آيانو بيا به مونږ | راپيدا كيږو په پيداوښت | نوي كښې |

تعجب په كار دې (هغه دا) چې كله مونږ مړهٔ شو او خاورې شو نو بيا به راژوندى كيږو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أُولَٰئِكَ | الَّذِينَ | كَفَرُوا | بِرَبِّهِمْ | وَأُولَٰئِكَ | الْأَغْلَالُ |
| هغه كسان دى | چې كفرئې كړې دې | په رب خپل سره | او دا هغه كسان دى | چې پټئ به پرتې وى | داخلق |

دا هغه خلق دى چې د خپل رب نه منكر دى او د دوئ په څټونو كښې به طوقونه زوړند

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فِي أَعْنَاقِهِمْ | وَأُولَٰئِكَ | أَصْحَابُ النَّارِ | هُمْ | فِيهَا | خَالِدُونَ۝ |
| په څټونو ددوئ كښې | او دا كسان | خاوندان د وور دى | دوئ به | په هغې كښې | هميشه وى |

پراتهٔ وى او هم دغه خلق دوزخيان دى چې هميشه به په كښې پراتهٔ وى ........

**قوله تعالى:: وَإِن تَعْجَبْ فَعَجَبٌ قَوْلُهُمْ**

**د دومره نښانونو باوجود دقيامت نه انكار:-** الله ﷻ خپل نبي ﷺ ته فرمائي چه ته دهغوى په دروغو ګڼړلو هيڅ حيرانتيا مه كوه.داخو دى داسې نښې چه كتلوسره د الله ﷻ د قدرت دهميشه نه مطالعه كولو سره هغه منى چه دټولوخالق هم الله دې. بيا د قيامت منكر كيږى. خود دې نه زياته هره ورځ مشاهده كوى چه هيڅ هم نه كيږى او الله ﷻ هرڅه كوى. هر د عقل خاوند معلومولې شى چه د زمكې او آسمان پيدائش د انسان د پيدائش نه ډير لوئ دى اودوباره پيدا كول دروميى ځل پيدا كولو نه ډيرآسان وى. لكه چه د الله ﷻ ارشاد دې ﴿أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّ اللَّهَ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَلَمْ يَعْيَ بِخَلْقِهِنَّ بِقَادِرٍ عَلَىٰ أَن يُحْيِيَ الْمَوْتَىٰ بَلَىٰ إِنَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ۝﴾چا چه آسمان اوزمكه بغيردسترې والى نه پيدا كړل نوآياهغه د مړو په دوباره راژوندى كولو قادر نه دې؟ بيشكه دې، بلكه هر څيز د هغه په قدرت كښې دى. نو دلته فرمائى چه په اصل كښې داكافران دى د هغوى په ستونو كښې به د قيامت په ورځ طوق وى. اودا دوزخيان دى چه هميشه به په دوزخ كښې وى.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَيَسْتَعْجِلُونَكَ | بِالسَّيِّئَةِ | قَبْلَ | الْحَسَنَةِ | وَقَدْ خَلَتْ |
| او په تلوار غواړى دوئ ستانه | بدى | مخكښې اد نيكئ نه | او په تحقيق چې تير شوى دى | |

اودوئ په ستانه دعافيت راتلو نه وړاندې د مصيبت تلوار كوى حال دا دې چې ددوئ نه وړاندې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مِن قَبْلِهِمُ | الْمَثُلَاتُ | وَإِنَّ | رَبَّكَ | لَذُو | مَغْفِرَةٍ | لِّلنَّاسِ |
| مخكښې ددوئ نه | مثالونه دعبرت | او بيشكه | رب ستا | خامخا مالك | د بښنې دې | د پاره د خلقو |

ډيردعذابونه د مثالونه تير شوى دى او بيشكه ستا رب د خلقو د ظلم (ګناهونو) باوجود بښونكې دې

| عَلٰی ظُلْمِهِمْ | وَاِنَّ | رَبَّكَ | لَشَدِيْدُ الْعِقَابِ |
|---|---|---|---|
| سره د ظلم د هغوی | او بیشکه | رب ستا | خامخا سخت عذاب ورکونکې دې |

.....................او بیشکه ستا رب سخت سزا ورکونکې دې.

**قوله تعالى:: وَيَسْتَعْجِلُوْنَكَ بِالسَّيِّئَةِ**

**د عذاب وخت مقرر دې :-** داد قیامت منکر واني که چرې رښتوني ئې نو په مونږ باندې زر عذاب ولې نه راولې؟ ونیل به ئې اې هغه سړیه چه دعوی کوې چه په تاباندې د الله ﷻ ذکر نازلیږي زمونږ په نیز خو ته پاګل ئې. که فرض کړه ته رښتوني ئې نود عذاب فرښتې ولې نه راولې؟ د دې په جواب کښې هغوی ته اووئیلې شو چه فرښتې حق او فیصلې سره راځي. کله چه هغه وخت راشي نو هغه وخت ایمان راوړل یا توبه کول اویا دنیك عمل کولوفرصت او مهلت به نه ملاویږي.دغه شان په بل آیت کښې دی ﴿يَسْتَعْجِلُوْنَكَ﴾ ددوو آیاتونو پورې او په یوځاۍ کښې دی ﴿سَاَلَ سَآئِلٌ﴾ اوپه آیت کښې دی چه بې ایمانه ددې د پاره تندی کوی او ایماندار د دې نه ویریږي او هغه حق ګڼري. دغه شان په بل آیت کښې فرمان دې چه هغوی به ونیل اې الله د قیامت نه وړاندې زمونږ معامله پوره کړه. او آیت مبارك کښې دی یا الله که دا ستا د طرف نه حق دی نو په مونږ باندې د آسمان نه کاڼړي راوروه، یاڅه بل څه المناك عذاب نازل کړه.مطلب دا چه د خپل کفر په وجه اود الله ﷻ دعذاب دانکار اودهغې راتلل محال ګڼرل او دومره بې ویرې او بې خطرې شوی وو چه د عذابونو د نازلیدلو آرزوګانې او غوښتنې به ئې کولې. دلته اوفرمائیلې شو چه د دوی نه وړاندې د داسې خلقو مثالونه پراته دی چه څنګه هغوی د الله ﷻ په عذابونوکښې راګیرکړې شو. دا خو اوواېه چه د الله ﷻ حکم او مهرباني ده چه ګناه ته ګوری خو زر ئې نه رانیسی ګنی په مخ د زمکې به ئې هیڅ څوك هم نه وو پریخودی. شپه ورځ خطاګانې ګوری او معافی کوی.

**الله ﷻ مغرفت اوعذاب والا دې::** خود دې نه دا مه ګڼرئې چه هغه په عذاب باندې قدرت نه لري. د هغه عذاب هم ډیر خطرناك ډیر سخت او ډیر درد ورکونکی دی. دالله ﷻ فرمان دې ﴿فَاِنْ كَذَّبُوْكَ فَقُلْ رَّبُّكُمْ ذُوْ رَحْمَةٍ وَّاسِعَةٍ ۚ وَلَا يُرَدُّ بَاْسُهٗ﴾ که دوی تا دروغ ګڼري نوته ورته واېه چه ستا رب د ډیرو رحمتونو والا دې، لیکن د هغه راغلې عذاب د ګناهګارانونه نشی اخواکیدې. اوفرمان دې چه ستا پروردګار زر عذاب ورکونکې، بخښونکې اومهرباني کونکې دې او په آیت کښې دی زما بنده او نبي زما بندیګانو ته خبر ورکړه چه زه بښونکې او مهربان یم او زما عذابونه هم ډیر دردناك دی. د دې قسم نور هم ډیر آیاتونه دی په کوم کښې چه امید، ویره او لالچ په یو ځاۍ بیان شوی دی. په ابن ابی حاتم کښې دی د دې آیت په نازلیدو باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل که د الله ﷻ معافی ورکول نه وو او مهرباني کول نه وو نود چا د ژوند خوندبه باقی نه وو او که د هغه دهمکی ورکول او سزا ورکول نه وونو هرسړی به بې پرواهنی سره ظلم او زیاتی کښې مشغول کیدل[1] په ابن عساکر کښې دی چه حسن بن عثمان ابو حسان رمادی رحمه الله په خوب کښې د الله ﷻ دیدار اوکړو. وئې کتل چه حضور ﷺ د الله ﷻ په وړاندې ولاړ دې اودخپل یو امتی شفاعت کوی په کوم باندې چه د الله ﷻ فرمان جاری شو چه آیا ستا د پاره دومره کافی نه دی چه ما په سورة رعدکښې په تاباندې آیت ﴿وَاِنَّ رَبَّكَ لَذُوْ مَغْفِرَةٍ لِّلنَّاسِ عَلٰی ظُلْمِهِمْ﴾ نازل کړې. ابوحسان رحمه الله فرمائی دې نه پس زما سترګې کولاؤ شوې.

---

[1] ابن ابی حاتم.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَيَقُوْلُ | الَّذِيْنَ كَفَرُوْا | لَوْلَآ اُنْزِلَ | عَلَيْهِ | اٰيَةٌ | مِّنْ رَّبِّهٖ ؕ | اِنَّمَآ | |
| او وائي هغه كسان چي انكارني كړي دي | اولې نازله نه شوه | په ده باندې | يوه نښه | د طرفه درب خپل نه | بيشكه چي | | |

او كافران وائي چي د ده د رب د طرفنه په ده باندې څه نښه ولې نازله نه شوه | ....(اې پيغمبره ﷺ) ته

| | | | |
|---|---|---|---|
| اَنْتَ | مُنْذِرٌ | وَّلِكُلِّ | قَوْمٍ هَادٍ ۝ |
| ته | ويرونكي يې | او دپاره دهر قوم | لار ښودونكي مقرر دي |

خو صرف (دبدبختو نتيجونه) ويرونكي يې او دهر قوم دپاره يو لارخودونكي وي

قوله تعالى: اِنَّمَآ اَنْتَ مُنْذِرٌ

**هدايت د الله په لاس او د نبي په ذمه تبليغ دي:** كافرانو خلقو به داعتراض په توګه ونيل چه څنګه وړاندينو پيغمبرانو معجزې راوړلي وې نو داپيغمبر ولي نه راوړي. مثلاً دعربوغرونه به د خپل ځائ نه اخوا كيدل او دلته به شينكي او نهرونه وو. د هغې په جواب كښې په يويل ځائ كښې دي چه مونږ به دا معجزې هم خودلي وې خود مخكينو په شان د هغې په دروغو ګنړلو باندې به د هغوى په شان عذاب راتلو. نود دوى په دې خبرو خفه كيږه اوفكرمندكيږه مه ستاپه ذمه خو صرف تبليغ دې. ته هدايت وركونكې نه ئې. د هغوى په نه منلوبه ستا نيول نه كيږي. هدايت د الله ﷻ په لاس كښې دې دا ستا د وس خبره نه ده. د هر قوم د پاره لارخودونكي او داعي دې يا دا مطلب دې چه هدايت وركونكې زه يم او ويرونكې ته ئې. په آيت مبارك كښې دى ﴿وَاِنْ مِّنْ اُمَّةٍ اِلَّا خَلَا فِيْهَا نَذِيْرٌ ۝﴾ په هر امت كښې ويرونكي تير شوي دي او دلته مراد د هادي نه پيغمبر دې. نو پيشوا او لارخودونكي په هره ډله كښې وى د چا د علم او عمل نه نور لار موندلې شي. د دې امت چه پيشوا رسول الله حضرت محمد ﷺ دې.

**دهاد نه مراد على رضي الله عنه اخستل غلط دي:** يو ډير منكر او فضول روايت دې چه د دې آيت د نازليدلو په وخت كښې. هغوى ﷺ په خپله سينه مباركه باندې لاس كيخودو چه منذر خو زه يم او ود حضرت على رضي الله عنه د اوږې طرف ته ئې اشاره اوكړه چه هادى على رضي الله عنه دې زما نه پس به هدايت حاصلونكى ستا نه هدايت حاصلوى[1] د حضرت على رضي الله عنه نه نقل دى چه په دې ځائ كښې د هادى نه مراد د قريشو يو سړې دې.[2] جنيد بغدادى رحمه الله وائي هغه حضرت على رضي الله عنه پخپله دې.

| | | |
|---|---|---|
| اَللّٰهُ يَعْلَمُ | مَا | تَحْمِلُ |
| الله پوهيږي | په هغه څه | چي بار اخلي |

اخه چي يوه ښځه په

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| كُلُّ | اُنْثٰى | وَمَا | تَغِيْضُ | الْاَرْحَامُ | وَمَا | تَزْدَادُ ؕ |
| هره | ښځه | او په هغه څه | چي كموى ئې | رحمونه | او په هغه څه چي | زياتوى ئې |

خپله خيټه كښې ساتي الله ته هغه ښۀ معلوم دي او څه چي (د ښځو) په رحم كښې (د بچي د پيداوښت په حقله) كمي زياتي كيږي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَكُلُّ شَيْءٍ | عِنْدَهٗ | بِمِقْدَارٍ ۝ | عٰلِمُ الْغَيْبِ | وَالشَّهَادَةِ | الْكَبِيْرُ | |
| او هر خيز | د هغه سره | په اندازه دي | عالم دي په پټو خيزونو | او په ښكاره | هغه لوئ دي | |

او دا هر خيز د هغۀ په نزد په يوه مقرره نيته كيږي هغۀ په پټو او په څرګندو ټولو خيزونو ښۀ عالم دي

[1] الطبرى: ۱۳/ ۱۰۸، حاكم: ۳/ ۱۳۰.
[2] المعجم الاوسط: ۱۳۸۳، المعجم الصغير: ۲/ ۳۸ وعبدالله بناحمد فى زوائد المسند: ۱/ ۱۲۶ وسنده حسن ورجل من بنى هاشم هوالرسول ﷺ.

| الْمُتَعَالِ⑨ |
| --- |
| اود اوچت شان مالك دی‌ا |
| ډیر لوئي دي اوعظیم دي ا |

**قوله تعالی:: اَللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تَحْمِلُ كُلُّ اُنْثٰى**

**دمور په رحم کښې لوئیدونکی بچي د حقیقت نه صرف الله خبر دې :** د الله ﷻ دعلم نه هیڅ څیز پټ نه دی. ټول سا لرونکی مښندې که څناور وی که انسانان د هغې د خیټې د بچو، د هغوی د حمل الله ﷻ ته علم دې. په خیټه کښې څه دی الله ﷻ ته ښه معلوم دی. یعنی چه ښځه ده که سړی؟ ښه دې که خراب؟ نیك دې که بد؟ د عمر خاوند دې که بې عمره؟ ارشاد باری تعالی دې.﴿هُوَ اَعْلَمُ بِكُمْ الخ﴾ هغه ته ښه پته ده کله چه تاسو د زمکې نه راپیدا کوی او چه کله تاسو د مور په خیټه کښې پټ شوی نې الخ او فرمان دې ﴿يَخْلُقُكُمْ فِيْ بُطُوْنِ اُمَّهٰتِكُمْ خَلْقًا مِّنْ بَعْدِ خَلْقٍ فِيْ ظُلُمٰتٍ ثَلٰثٍ ؕ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ لَهُ الْمُلْكُ ؕ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ فَاَنّٰى تُصْرَفُوْنَ﴾ هغه تاسو د مور په خیټه کښې راپیدا کوی د یو نه پس په بل پیدائش کښې په دریو دریو تیارو کښې.

**د مور په خیټه کښې د بچي مختلف ادوار::** ارشاد دې ﴿ وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ مِنْ سُلٰلَةٍ مِّنْ طِيْنٍ ۚ﴾ مونږ انسان د خاورې نه پیدا کړو، بیا نطفه د نطفې سره وینه شوه، بیا دچك وینې نه د غوښې ټکړه شوه، غوښه نې د هډوکی په شکل کښې کړه. بیا نې په هډوکو باندې غوښه اوخیژوله او بیا په آخری پیدائش سره پیدا کړل. نو بهترین خالق بابرکت دې.

**د هر دور موده څلویښت ورځې وی::** د بخاری او مسلم په حدیث کښې د رسول الله فرمان دې چه په تاسو کښې د هر یو پیدائش څلویښت ورځوپورې د هغه د مور په خیټه کښې جمع کیږی. بیا هم دومره ورځو پورې چك وینه شی. بیا هم دومره ورځو پورې د غوښې ټکړه شی. بیا الله ﷻ خالق کل یوه فرښته راولیګی کومې ته چه د څلورو خبرو لیکلو حکم وی. د هغه رزق عمر نیك او بد کیدل لیکی. (۱)او په حدیث شریف کښې دی هغه تپوس کوی چه اې الله سړې به وی که ښځه؟ بدبخت به وی که نیك بخت؟ رزق نې څه دې؟ عمر نې څومره دې؟ الله ﷻ نې ښائی او هغه نې لیکی.

**دغیبو پنځه کنجیانې::**(۲)حضور ﷺ فرمائی د غیبو پنځه کنجیانې کوم چه بغیر د الله ﷻ بل هیڅ څوك نه پیژنی.د صبا خبره د الله ﷻ نه علاوه بل څوك نه پیژنی. خیټه څنګه غتیږی او څنګه راغونډیږی څوك نه پیژنی. باران به کله کیږی چاته پته نشته. کوم سړې به کوم ځائ مری د هغه نه بغیر چاته پته نشته. قیامت به کله وی د دې علم هم الله ﷻ ته دې.(۳)

**دخیټې دکمولواوزیاتولو مطلب::** خیټه څنګه کمه وی دې نه مراد حمل ساقط کیدل دی او په رحم کښې څنګه زیاتیږی څنګه پوره کیږی ددې علم هم الله ﷻ ته دې. ګوره یوه ښځه لس میاشتې اخلی څوك نهه میاشتې د چا حمل زیاتیږی او د چا کمیږی.دنهه میاشتونه زیاتیدل اود نهو میاشتو نه کمیدل هم دالله ﷻ په علم کښې دی① دضحاك رحمه الله بیان دې چه زه دوه کاله دمور په خیټه کښې وم،چه کله پیدا شوم نوزماوراندینی دوه غاښونه راوتلې وو②دعائشه رضی الله عنها فرمان دې دحمل زیاته موده دوه کاله

---

(۱) صحیح بخاری کتاب بدء الخلق باب ذکر الملائكة صلوات الله علیهم:۳۲۰۸، صحیح مسلم:۲۶۴۳،ابوداؤد:۴۷۰۸، ترمذی:۲۱۳۷، ابن ماجه: ۷۶ احمد: ۳۸۲/۱، مسندحمیدی: ۱۲۶.

(۲) صحیح بخاری کتاب الحیض باب مخلقة وغیر مخلقة: ۳۱۸، صحیح مسلم: ۲۶۴۶.

(۳) صحیح بخاری کتاب التفسیر باب ﴿الله یعلم ما تحمل كل انثی وما تغیض الارحام﴾: ۴۶۹۱،ابن حبان: ۲۷۳/۱، السنن الکبری۳۷۰/۶، المعجم الاوسط: ۲۵۸/۲، احمد:۵۴/۲، الطبری:۲۸/۲۱.

ده. دکمی نه مراد په بعضې خلقوهم د حمل په ورخوکښې وينه راځي او د زياتي نه مراد د نهو مياشتونه زيات حمل حصاريدل ③مجاهد رحمه الله فرمائي دنهونه وړاندې چه کومه ښځه وينه اووينی نود نهونه زياتيږي لکه د حيض ورځې.دوينې پريوتوسره ماشوم ښه کيږي اوچه نه پريوزي پوره چاق او لوئ وی

**بچې دمور په خيټه کښې بې غمه وی::**حضرت مکحول رحمه الله فرمائي چه ماشوم د مور په خيټه کښې بالکل بې غمه بې پرواه او په آرام باندې وی. د هغه د موردحيض وينه د هغه خوراك وی چه د بغير د غوښتنې او په آرام سره هغه ته رسی هم دغه وجه چه په دې ورځو کښې په مور دحيض بيماری نه راځي بياچه کله ماشوم پيدا شی نو په زمکه باندې لګيدو سره چغې وهی. د دې نابلده ځای نه هغه ويريږی. کله چه د هغه نوم پريکړې شی نو الله ﷻ د هغه رزق د هغه د مور سينې ته رسوی او اوس هم هغه ته بغير د غوښتلو بې مشقته په بې غمنې او بې فکرنې سره هغه ته رزق ملاويږی. بيا چه لږ شان لوئيږی نو په خپلو لاسو خوری څکی خو بالغ کيدو سره د رزق د پاره شور زوګ شروع کړی. که د مړکولو او قتل کولو پورې د رزق ملاويدلو امکان وی نومخکښې روستوکيږی نه. افسوس اې بنيادمه په تا حيرانتيا ده چا چه تاته د مور په خيټه کښې رزق درکړو، چاچه تاله د مور په غيږ کښې رزق درکړو، چاچه تاله د ماشوموالی نه تر بلوغت پورې رزق درکړو نو ته اوس بالغ او عقلمندکيدو سره دا وائې چه په انسان افسوس دې د کوم ځای نه به خورم؟ که مړه کيدل وی که قتل وی؟

**د رسول کريم ﷺ د خپل لورې پيغام::**بيا هغوی دا آيت اولوستلو. هر څيز هغه سره په يوه اندازه دې. رزق اجل يعني مرګ هر څه مقرر شوی دی.دحضور ﷺ يوې لور بی بی هغوی له يو سړې راوليږلو چه زما ماشوم په آخری حالت کښې دې ستاسو تشريف راوړل زما د پاره د خوشحالنی ذريعه ده. هغوی ﷺ اوفرمائيل لاړ شه هغې ته اووايه چه کوم الله ﷻ واخلی هغه هم د هغه دی او چه کوم نی درکړی هغه هم د هغه دی د هغه څيز صحيح اندازه هم هغه سره ده، هغې ته اووايه چه صبر اوکړه او د الله ﷻ نه د ثواب اميد ساته الخ (<sup>1</sup>)الله ﷻ هر هغه څيز باندې خبر دې کوم چه د خلقو نه پټ دې اود هغې نه کوم چه بنديګانو ته ښکاره دې. د هغه نه هيڅ هم پټ نه دی. د هغه د ټولونه لوئ، هغه د هر چا نه اوچت دې. هر څيز د هغه په علم کښې دی. ټول مخلوق د هغه په وړاندې عاجز او لاچاره دې. ټول سرونه د هغه په وړاندې ټيټ دی او ټول بنديګان د هغه په وړاندې عاجز لاچاره او صرف بې بس دی.

سَوَآءٌ مِّنْكُمْ مَّنْ اَسَرَّ الْقَوْلَ وَمَنْ

|يو شان دی (هغهٔ ته) | ستاسو نه | هغه څوك| چې پټوی خبره | او هغه څوك

| په تاسو کښې که څوک په پټه خبره کوی او که په ښکاره | ټول هغهٔ ته برابر

جَهَرَ بِهٖ وَمَنْ هُوَ مُسْتَخْفٍۭ بِالَّيْلِ وَسَارِبٌۢ

چې په اوچت اواز کوی دا| او هغه څوك| چې هغهٔ| پټيدنکی وی| په شپه کښې |او هغه څوك چې روان وی

دی|او هغه څوک ورته هم يو شان معلوم دی که د شپې (په تياره کښې) پټ شی| او که د ورځې (ښکاره) ګرځي

بِالنَّهَارِ۝ لَهٗ مُعَقِّبٰتٌ مِّنْۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهٖ

په ورځ کښې | د هغه | نګرانې فرښتې مقرر دی | مخکښې د انسان نه | او روستو د هغهٔ نه

راګرځي|هر يو د پاره نمبر په نمبر راتلونکې (فرښتې) مقرر دی | وړاندې هم او روستو هم

---

[1]) صحيح بخاری کتاب الجنائز باب قول النبي ﷺ((يعذب الميت ببعض بكاء اهله عليه اذا كان النوح من سنته)):۱۲۸٤، صحيح مسلم: ۹۲۳، نسائی:۱۸۶۸ بيهقی:۱/۶۱۲، مصنف عبدالرزاق: ۳/۵۵۲، احمد:۵/۲۰٤، ابن حبان:٤۶۱، ابن ابی شيبه:۳/۳۹۲، مسندالطيالسی:۶۳۶

| بِقَوْمٍ | مَا | لَا يُغَيِّرُ | إِنَّ اللّٰهَ | مِنْ أَمْرِ اللّٰهِ ط | يَحْفَظُوْنَهٗ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې وي په يو قوم باندې | هغه حالت | نه بدلوي | بيشكه الله | په حكم د الله | چې حفاظت كوي د انسان |
| هغوی د الله ﷻ په حكم د هغهٔ حفاظت كوي \| بيشكه الله ﷻ د يو قوم (ښهٔ) حالت نهٔ بدلوي | | | | | |

| اللّٰهُ | أَرَادَ | وَإِذَآ | بِأَنْفُسِهِمْ ط | مَا | يُغَيِّرُوْا | حَتّٰى |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الله | اراده اوكړي | اوهركله چې | په خانونوخپلوا | هغه حالت | چې بدل كړي هغوئ | تر هغې پورې |
| ترڅو چې هغوئ پخپله خپل حالت بدل كړې نهٔ وي\|اوهركله چې الله په يوقوم باندې دمصيبت (راوستو) | | | | | | |

| مِنْ وَّالٍ۝ | مِّنْ دُوْنِهٖ | وَمَا لَهُمْ | لَهٗ ۚ | سُوْٓءًا فَلَا مَرَدَّ | بِقَوْمٍ |
|---|---|---|---|---|---|
| څوك مددگار | په مقابله دالله كښې | او نشته هغوئ دپاره | د هغې | مصيبت نو بيا نشته واپس كيدل | په يوقوم |
| اراده اوكړي\|نو هيڅوك ئې نشي واپس كولې\| او دوی د پاره به د الله ﷻ نه سوا بل څوك مددگار نهٔ وي | | | | | |

قوله تعالى:: سَوَآءٌ مِّنْكُمْ مَّنْ أَسَرَّ الْقَوْلَ وَمَنْ جَهَرَ بِهٖ

**د الله ﷻ علم ټول مخلوق راګيرونكي دې:-** دالله ﷻ علم ټول مخلوق راګيركړې دې هيڅ څيز د هغه د علم نه بهر نه دې.په مزه او تيز هريو آواز اوري. پټ اوښكاره هر څه پيژني. كه ته نې پټوې او كه ښكاره كوې د هغه نه پټ نه دی. حضرت عائشه صديقه ﷺ فرماني هغه هم الله ﷻ دې د چا اوريدو چه د ټولو آوازونه راګيركړي دی. د الله ﷻ قسم يوې ښځې د خپل خاوند ګيله رسول الله ﷺ ته داسې په غوږ كښې پس پس سره اوكړه چه زه ورسره په خواكې ناسته وم خو ما پوره واونه ريده خو الله ﷻ آيت ﴿قَدْ سَمِعَ اللّٰهُ﴾الخ [1]نازل كړو.يعنې د دې ښځې دا ټول پس پس الله ﷻ اوريدل. هغه اوريدونكې او ليدونكې دې. څوك چه دخپل كور په تهه خانوكښې د شپې په تياروكښې پټ وي او هغه چه دورځې په رڼاكښې په كولاؤ لارو روان وی هغه د الله ﷻ په علم كښې برابر دی.لكه چه ﴿أَلَا حِيْنَ يَسْتَغْشُوْنَ ثِيَابَهُمْ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّوْنَ وَمَا يُعْلِنُوْنَ﴾ كښې فرماني او آيت ﴿وَمَا تَكُوْنُ فِيْ شَأْنٍ﴾ كښې ارشاد شوي دې چه ستاسو د هر كار په وخت كښې مونږ اخوادېخوانه يو. هيڅ يوه ذره زمونږ د معلوماتونه بهر نه ده. د الله ﷻ فرښتو د څاتندونكې او څوكيدار په شان د بنديګانونه ګيرچاپيره مقرر دی چه هغوی د آفتونو او مصيبتونو نه بچ كوی.

**هرانسان دڅلورو فرښتو په مينځ كښې وی::** لكه څنګه چه په اعمالوباندې ساتندونكې د فرښتو يو ډله ده چه وار په وار يو بل پسې راځي. د شپې جدا او د ورځې جدا او لكه چه څنګه دوه فرښتې د انسان ښي اوګس طرف ته د اعمالو ليكلوباندې مقرر دی. د ښي طرف والا نيكئي ليكي او د ګس طرف والا بدئي ليكي. دغه شان دوه فرښتې د هغه نه وړاندې روستو دی چه د هغه حفاظت او ساتنه كوی. نو هر انسان هر وخت څلورو فرښتو سره اوسيږی يعنی دوه ښي او ګس طرف ته ليكونكې او دوه حفاظت كونكې وړاندې روستو. بيا د شپې جدا او د ورځې جدا. په حديث شريف كښې دی چه تاسو له فرښتې يوبل پسې خې راځي.د شپې او ورځې دهغوی يو ځاي كيدل سحراومازيګر مونځونو كښې كيږی. د شپې تيريدونكې آسمان ته خيژی. او سره د علم الله ﷻ د هغوی نه تپوس كوی چه تاسو زما بنده په كوم حالت كښې پريخودو؟هغوی جواب وركوی چه مونږ لاړو نو هغه په مانځه كښې ووا

[1]) نسائي كتاب الطلاق باب الظهار: ۳۴۹۰، ابن ماجه: ۲۰۶۳وهو صحيح، صحيح بخاري تعليقاومختصر اقبل حديث: ۷۳۸۶،حاكم:۴۸۱/۲.

په زړلو نو په مانخه کښې مو پریخودو(۱) په حدیث شریف کښې دی چه تاسو سره هغه وی او بغیر د ډوس ماتی اوجماع د وخت نه هغه تاسو نه نه جدا کیږی.نو تاسوله د هغوی لحاظ د هغوی نه شرم اود هغوی اکرام او عزت کول پکار دی.(۲)

نو چه کله الله ﷻ څه نقصان خپل بنده ته رسول غواړی نو د ابن عباس‌﷛ د قول مطابق حفاظت کونکې فرښتې هغه کار کولو ته پریږدی. مجاهد ﷫ وائی چه هر بنده سره د الله ﷻ د طرف نه موکل وی چه هغه به اوده کیدو او ویښیدو د پیریانو انسانان زهریله څناورو او ټولو آفتونونه بچ کوی. هر یو څیز منه کوی خو هغه کوم چه الله ﷻ رسول غواړی. ابن عباس‌﷛ فرمانی دا د دنیا د بادشاهانو امیرانو ذکر دې کوم چه په پهره او څوکۍ کښې اوسیږی. ضحاك ﷫ فرمانی چه بادشاه د الله ﷻ په ساتنه کښې وی(امرالله) سره یعنی د مشرکانو او ظاهرینونه والله اعلم. ممکن دی چه د دې قول نه غرض دا وی لکه څنګه چه د بادشاهانو او امیرانو څوکیداری سپاهیان کوی دغه شان د بنده څوکیداری د الله ﷻ: طرف نه مقرر شوې فرښتې کوی. په یو غریب روایت کښې په تفسیر ابن جریر کښې روایت دې په حضرت عثمان ﷛ حضور ﷺ له راغلواو د هغوی ﷺ نه ئې تپوس اوکړوچه بنده سره څومره فرښتې وی. هغوی ﷺ اوفرمائیل یوه خو ښی طرف ته نیکئی لیکونکې چه د کس طرف والا باندې امیره ده. کله چه ته څه نیکی کوې نو د یوې په ځائ لس لیکی او ته چه کله بدی کوې نود گس طرف والا د ښی طرف والا نه اجازت غواړی نو هغه وائی چه لږ صبر اوکړه کیدې شی چه توبه یا استغفار اوکړی. درې ځل هغه اجازت غواړی نو چه بیا هغه توبه اونه کړی نو دا د نیکئی لیکونکې فرشته وائی چه اوس ئې ولیکه. الله ﷻ دې مونږ د دې نه خلاص کړی دا خو ډیر خراب ملګرې دې دې ته د الله ﷻ هم لحاظ نشته دا د هغه نه شرمیږی نه. د الله ﷻ فرمان دې چه انسان کومه خبره په ژبه راوړی په دوی باندې څوکیداران مقرر او لیکلې شوی دی او دوه فرښتې ستا نه وړاندې روستو دی. د الله ﷻ فرمان دې (لَهُ مُعَقِّبٰتٌ)الخ. اویوې فرښتې ستادتندی وینته نیولی دی (۳)کله چه ته د الله ﷻ د پاره عاجزی کوئې نو هغه تا اوچتو درجوته رسوی او چه ته کله د الله ﷻ په وړاندې سرکشی او کبر کوې نو هغه تا ښکته او عاجزکوی او دوه فرښتې ستا په شونډو دې کوم درود چه ته په ما باندې وائې د هغې دوی حفاظت کوی. یوه فرښته ستا په خُله باندې ولاړه ده چه د مار وغیره غوندې څیز ستا حلق ته لاړ نه شی او دوه فرښتې ستا په سترګو دی نو دا لس فرښتې هر بنیادم سره دی بیا د شپې جدا دی او د ورځې جدا دی. دغه شان هر انسان سره د الله ﷻ د طرف نه شل فرښتې دی. یو خوا خو ټوله ورځ د ابلیس د دهوکه کولو ډیوټی وی او هره شپه د هغه د اولاد. (۴)مسند احمد کښې دی تاسو کښې هر یو سره پیرې ملګرې دې او فرښته ملګرې دې. خلقو وئیل چه تاسو سره هم؟ وئې فرمائیل چه او الله ﷻ په هغوی باندې زما امداد کړې دې هغوی ماته د ښیګړې نه علاوه نور څه نه وائی (مسلم)دا فرښتې د الله ﷻ په حکم سره د هغوی ساتنه کوی په بعض قراءتونوکښې (اَمْرِاللهِ) په بدله کښې (بامرالله) دی. کعب ﷛ وائی که د بنیادم د پاره هر نرم او سخت کولاؤ کړې شی نو هر یو څیز به هغه ته په نظر راشی اوکه د الله ﷻ د طرف نه دا حفاظت کونکې فرښتې مقرر نه وې چه د خوراك څښاك او شرمګاهونو حفاظت کونکې دی نو والله تاسو خو به اوچت کړې شوی وئې. ابو امامه ﷫ فرمانی هر سړی سره حفاظت

۱) صحیح بخاری کتاب بدء الخلق باب ذکر الملائکة صلوات الله علیهم: ۳۲۲۳، صحیح مسلم: ۶۳۲، ابن حبان:۱۷۳۶، مسندابی عوانة:۳۱۵/۱، السنن الکبری:۱۷۵/۱، موطا امام مالك: ۴۱۱، احمد:۴۸۶/۲، مسندابی یعلی: ۲۱۵/۱۱، شعب الایمان:۵۰/۳، صحیح ابن خزیمه:۱۶۵/۱.

۲) ترمذی کتاب الادب باب ماجاء فی الاستتار عندالجماع:۲۸۰۰.

۳) رعد:۱۸.

۴) طبری:۲۹۴/۹.

کونکي فرښته ده چه د تقدیری کارونونه علاوه نورې ټولې بلاګانې د هغه نه لرې کوی. د قبیله مراد یو سړې حضرت علی ﷺ له راغلو هغه ئې په مانځه کښې مشغول اولیدو نو وئې وئیل چه د قبیله مراد خلقو ستاسو د قتل اراده کړې ده تاسو خپله پهره او څوکئې مقرر کړئې. هغوی اوفرمائیل چه هر سړی سره د هغه حفاظت کونکې دوه فرښتې مقرر دی بغیر د تقدیر د لیك نه هیڅ یوه بدی انسان ته رسیدو ته نه پرېږدی. واوره اجل یو مضبوطه قلعه ده او ښکلې ډهال دې او وئیلی شوی دی چه د الله ﷻ په حکم او الله ﷻ په امر د هغه حفاظت کوی.

**شرعی دم هم د تقدیر حصه ده ::** لکه چه په حدیث شریف کښې دی خلقو د حضور ﷺ نه تپوس اوکړو چه د مونه او پوکی چه مونږ کوو آیا په دې باندې د الله ﷻ مقرر شوې تقدیر اخوا کیدې شی؟ هغوی ﷺ اوفرمائیل چه هغه خو پخپله د الله ﷻ د طرف نه مقرر شوې دې. [1] په ابن ابی حاتم کښې دی چه د بنی اسرائیلو په انبیاؤ کرامو کښې د یو طرف ته د الله ﷻ وحی اوشوه چه خپل قوم ته اووایه چه د کوم کلی والا او کوم کور والا د الله ﷻ تابعدارئی کښې تیرولو سره د الله ﷻ معصیت کوی الله ﷻ به د هغوی د خوشحالئی څیزونه د هغوی نه لرې کړی هغوی ته هغه څیزونه وررسوی چه هغوی ته تکلیف رسونکې وی. د دې تصدیق د قرآن کریم د آیت ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يُغَيِّرُ﴾ نه هم کیږی. د امام ابن ابی شیبه رحمه الله کتاب صفة العرش کښې دا روایت مرفوعا هم راغلې دې. عمیر بن عبدالملك وائی چه د کوفې په منبر باندې حضرت علی ﷺ مونږ ته خطبه راکړه کومه کښې چه فرمائیل چه که زه به چپ پاتې شوم نو حضور ﷺ به خبره شروع کوله اوکله به ماتپوس کولو نو هغوی ﷺ به جواب راکولو. یوه ورځ حضور ﷺ ماته اوفرمائیل الله ﷻ فرمائی ماته د خپل عزت او جلال د اوچتوالی چه په عرش دې قسم دې چه د کوم کلی د کوم کور خلق زما په نافرمانو کښې اخته وی او بیا هغه پرېږدی او زما په تابعدارئی کښې لګیاشی نو زه هم خپل عذاب او تکلیف د هغوی نه اخوا کړم او خپل رحمت او آرام هغوی ته رسوم. دا حدیث غریب دې او د دې په سند کښې یو راوی غیرمعروف دې.

هُوَ الَّذِیْ یُرِیْکُمُ الْبَرْقَ خَوْفًا وَّطَمَعًا وَّیُنْشِئُ السَّحَابَ

هغهٔ | هغه ذات دې | چې ښائی تاسوته | پریښنا | هم ویره | او هم امید | او پورته کوی | وریخې

الله ﷻ هغه ذات دې چې تاسو ته دبجلئ پرق ښائی | چې د ویرې اوامید دوارو ذریعه ده || او دا وبونه ډکې درنې

الثِّقَالَ ﴿١٢﴾ وَیُسَبِّحُ الرَّعْدُ بِحَمْدِهٖ وَالْمَلٰٓئِکَةُ مِنْ خِیْفَتِهٖ

درنې || او پاکی بیانوی | د وریخې ګړزار | د حمد د هغه سره || او فرښتې هم | د ویرې د هغهٔ نه

وریخې راخیژوی || اورعد (ګړګوږ) سره د تعریف نه د هغهٔ پاکی بیانوی || او فرښتې هم د هغهٔ د ویرې نه ربیږی

وَیُرْسِلُ الصَّوَاعِقَ فَیُصِیْبُ بِهَا مَنْ یَّشَآءُ وَهُمْ

اولیږی هغهٔ | تندرونه | نو رسوی | دغه تندرونه | هغه چاته | چې اوغواړی | په داحال کښې چې هغوی

اوهغهٔ تندرونه رالیږی | نو چې په چا غواړی په هغهٔ ئې غورزوی | او تهٔ ګوره چې دوئ د الله ﷻ

یُجَادِلُوْنَ فِی اللّٰهِ وَهُوَ شَدِیْدُ الْمِحَالِ ﴿١٣﴾

جګړه کوی | په باره د الله کښې | او هغهٔ | سخت دې | دتدبیرپه لحاظ سره |

په وحدانیت کښې جګړې کوی | حال دا دې چې هغهٔ دلوئې طاقت خاوند دې |

---

[1] ترمذی کتاب الطب باب ماجاء فی الرقی والادویة :۲۰٦۵، ابن ماجه:۳٤۳۷، حاکم:٤۰۲/٤، المعجم الکبیر:۳۰۹۰، مجمع الزوائد:۸۵/۵.

قوله تعالى: وَيُسَبِّحُ الرَّعْدُ بِحَمْدِهٖ

د أسماني بجلئ پړق پړوق: بجلي هم د هغه په حکم کښې ده. حضرت ابن عباس ﷺ د سوال کونکي په جواب کښې وئيلي ووچه بجلي اوبه دی. مسافرچه دا وينی د خپل تکليف او مشقت د ويرې نه ويريږي او مقيم د برکت او ګټې په اميد باندې د رزق د زياتيدو لالچ کوی. هم هغه دا درنې اوريځې پيدا کوی چه د اوبو د بوج په وجه زمکې ته نزدې راځی نو په دې کښې بوج هم د اوبو وی. بيانی اوفرمائيل تندر هم د هغه تسبيح او حمد کوی چه هر څيز د الله ﷻ تسبيح او حمد کوی. (۱)

د وريځو خبرې اوخندا: يوحديث شريف کښې دی چه الله ﷻ اوريځې پيدا کوی چه په ښه شان سره خبرې کوی او خاندی. (۲)ممکن دی چه د خبرونه مراد ګړځيدل او خندا نه مراد دبجلئ ښکاره کيدل وی. سعدابن ابراهيم رحمه الله فرمائی الله ﷻ باران راليږی اودهغې نه ښه خبرې کونکي اوښه خندا کونکي بل څوک نشته. د هغه خندا بجلی ده اود هغه خبرې ګړځار دې. محمد بن مسلم رحمه الله وائی چه مونږ ته دا خبره رارسيدلې ده چه بجلي يوه فرشته ده د کومې چه څلور مخونه دی يوه د انسان په شان يو د غوئی په شان يو د باز او بله د زمری په شان. هغه چه کله لکئ خوزوی نو بجلي ښکاره کيږی. حضور ﷺ به چه ګړځ ګړوځ واوريدو نو دا دعا به ئی لوستله ﴿اللهم لاتقتلنا بغضبك ولاتهلكنا بعذابك وعافنا قبل ذالك﴾ (ترمذی)(۳)بل روايت کښې دا دعا ده ﴿سبحان من يسبح الرعد بحمده﴾ حضرت علی ﷺ چه به ګړځ اوريدو نو دا به ئی لوستل ﴿سبحان من سبحت له﴾ (۴)ابن ابی زکريا فرمائی چه څوك ګړځ ګړوځ واوزی نو وائی دې ﴿سبحان الله وبحمده﴾(۵)په ده به بجلي يعنی تندر نه راپريوزی. عبدالله بن زبير ﷺ چه به ګړځ ګړوځ اوريدو نو خبرې به ئی پريخودې او فرمائيل به ئی ﴿سبحان الذي يسبح الرعد بحمده والملئكة من خيفته﴾ (۶) اوفرمائيل به ئی چه په دې آيت کښې په دې آوازکښې د زمکې والا د پاره ډير ويرونکې څيز دې. په مسند احمد کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائی ستاسو رب العزت فرمائی که زما بنديګانو زما پوره تابعداری کوله نو مابه د شپې بارانونه کول او د ورځې به مې نمر راځيژولو او دوی ته به مې د ګړځ ګړوځ آواز قدرې نه اورولو. (۷)

دګړزګړوزاوريدلوسره تسبيح وئيل پکاردی: طبرانی کښې دی چه هغوی ﷺ فرمائی ګړځ ګړوځ اوريدو سره د الله ﷻ ذکرکوئی ځکه چه په ذکر کونکو باندې تندر نه راپريوزی. (۸)هغه تندر راليږی او چه په چا باندې غواړی عذاب کوی هم په دې وجه به په آخره زمانه کښې تندرونه ډير راپريوزی. دمسند احمد په حديث شريف کښې دی چه قرب قيامت کښې به تندرونه ډير پريوزی. تردې چه يو سړې به راشی او د خپل قوم نه به تپوس اوکړی چه سحر په چا باندې تندر پريوتې دې؟ هغوی به وائی فلانکی باندې فلانکی باندې. (۹)

---

(۱) ۱۷/الاسراء: ٤٤.
(۲) احمد: ٥/٤٣٥ وسنده صحيح الاسماء والصفات للبيهقی: ٩٨٨ الامثال للرامهرمزی: ١٢٥.
(۳) ترمذی کتاب الدعوات باب مايقول اذا سمع الرعد: ٣٤٥٠، الادب المفرد: ٢٧١، السنن الكبرى: ٧٦٤، ابن ابی شيبه: ٣١/٧، عمل اليوم والليلة للنسائی: ٩٢٧، بيهقی: ٣٦٢/٣، احمد: ١٠٠/٢، حاكم: ٢٧٦/٤.
(۴) صحيح الادب المفرد: ٧٢٢عن ابن عباس ﷺعن قوله وسنده حسن.
(۵) الطبری: ٢٩٨/٩.
(۶) موطا امام مالك رواية ابی مصعب، ١٧١/٢، ح ٢٠٩٤ وسنده صحيح.
(۷) احمد: ٢٥٩/٢، حاكم: ٣٤٩/٢، مسند الطيالسی: ٢٥٨٦.
(۸) طبرانی: ١١٣٧١، مجمع الزوائد: ١٣٦/١٠.
(۹) احمد: ٦٤/٣-٦٤، مجمع الزوائد: ٩/٨، حاكم: ٤٤٤/٤.

**د يو مغرور سردار واقعه::** ابويعلى راوي دي چه حضور ﷺ يو سړي د يو مغرور سردار د راغوښتلو د پاره اوليږلو. هغه ونيل كوم رسول الله اوكوم الله؟ الله دسرو زرو دې كه دسپينو زرو؟ ياد پيتلو؟ قاصد واپس راغلو او حضور ﷺ ته ئې دا ذكر اوكړوچه گورئې ما خو تاسو ته اول نه عرض كړې وو چه هغه كبرژن او مغرور سړې دې تاسو هغه مه راغواړئې. حضور ﷺ بيا اوفرمائيل دوباره لاړ شه او هغه ته هم دغه اووايه. هغه لاړو او بياني راوغوښتلو خو هغه فرعون هم هغه جواب دا خل هم وركړو. قاصد حضور ﷺ ته واپس عرض اوكړو نو حضور ﷺ دريم ځل باندې وراوليږلو. په دريم ځل باندې هغه پيغمبر اوريدو سره هم هغه جواب وركول شروع كړو چه بوه اوريځ د هغه د سر د پاسه راغله گرځ شو او په هغه باندې تندر راپريوتلواو د هغه د سر نه ئې كهوپړئې والوزوله.(۱) دې نه پس دا آيت نازل شو. د حضرت انس ﷺ نه د دې معنى روايت هم ذكر دې.(۲).په يو روايت كښې دى چه يو يهودى حضور ﷺ له راغلو او وئې ونيل چه الله دتانبې دې يادمرغلرواوكه د ياقوتو.لادهغه سوال پوره شوې نه ووچه تندر راپريوتلو او هغه ئې تباه كړو او دا آيت نازل شو(۳)قتاده ﷺ فرمائي ذكر دى چه يو سړي قرآن دروغ اوگڼرلو اودحضور ﷺ د نبوت نه ئې انكار اوكړو.هم هغه وخت د آسمان نه تندر راغلو او هغه هلاك شو او دا آيت نازل شو.(۴)

**دعربو د مغرور سردارانو واقعه::** د آيت په شان نزول كښې د عامر بن طفيل او اربد بن ربيعه قصه هم بيان شوې ده. دا دواړه د عربو سرداران په مدينه كښې حضور ﷺ له راغله او وئې ونيل چه مونږ به تا اومنو خو په دې شرط چه مونږ نيم په نيمه شريك كړې. هغوى ﷺ دوى نااميده كړل نو عامر ملعون اووئيل والله زه به د عربو ټول ميدان د لښكر نه ډك كړم. حضور ﷺ اوفرمائيل ته درغړن نې الله ﷻ به تاته داوخت هم درنه كړي. بيا دا دواړه په مدينه كښې حصار وو چه موقع موندلو سره به حضور ﷺ قتل كړو. يوځل هغوى ته موقع ملاؤ شوه نو يو كس هغوى ﷺ په خبروكښې لگياكړو او بل توره راوړه شانه راغلو خو هغه محافظ حقيقى هغه د دوى د شر نه محفوظ كړو. اوس د دې ځاى نه نامراده لاړل او د خپل سوزيدلى زړونو پهولې ماتولو دپاره ئې عرب د حضور ﷺ خلاف راپاسول. هم په دې حال كښې په اربد باندې تندر راپريوتلو او د هغه كار خو خلاص شو. عامر د طاعونى غوټې راگير كړواو هم په دې كښې په چغو چغومرداړشواوهم د داسې خلقو متعلق دا آيت نازل شو چه الله ﷻ په چا باندې غواړي تندر راغورزوى.

د اربد رور لبيد دخپل رور دا واقعه په شعرونوكښې ښه بيان كړې او په روايت كښې دى چه عامر ونيل كه زه مسلمان شم نو ماته به څه ملاؤ شي. حضور ﷺ اوفرمائيل چه څه د نورو مسلمانانو حال وى هغه به ستا هم وى. نو هغه ونيل چه بيا خو زه نه مسلمانيږم. كه ستانه پس د دې كار مشر زه جوړيږم نو زه بيا دين قبلوم. هغوى ﷺ اوفرمائيل دا امرخلافت نه ستا د پاره دې او نه ستا د قوم د پاره او دا ده چه زمونږ لښكر به ستا په امداد كښې وى. هغه ونيل چه ماته د دې ضرورت نشته. اوس هم نجدى لښكر زما شاته دې.ما دېخې كچې مالك كړه نو زه به دين اسلام قبول كړم، هغوى ﷺ اوفرمائيل چه نه دا دواړه رسول ﷺ ته لاړل نو عامر اووئيل والله مدينه به د څلورو واړو طرفونه په لښكرو راگيره كړم حضور ﷺ اوفرمائيل الله ﷻ به ستا دا مراد پوره نه كړي. نو اوس دې دواړو مشوره اوكړه چه يو به نبي په خبرو كښې مشغول كړو او دونم به ئې كار خلاص كړي. بيا به د هغوى نه جنگيړى څوك؟ زيات نه

---

۱) مسندابی یعلی:۳۴۶۸، الطبری:۱۲۵/۱۳
۲) مسندابی یعلی:۳۳۴۱۰، البزار:۲۲۲۱
۳) الطبری.۱۲۵/۱۳
۴) الطبری:۱۲۶/۱۳

زيات به ديت ورکړو خان به خلاص کړو. نودا دواړه بياحضور ﷺ له راغله. عامر ونيل تاسو نن شان راپاسئي زه تاسو سره لږه خبره کول غواړم.حضور ﷺ پاسيدو او هغه سره لاړو د يو ديوال لاندې خبرې کولې.حضور ﷺ هم اودريدو اوريدې. اربد موقع بيامونده او په توره ئې لاس کيخودو هغه ئې د تيکی نه راويستل غوښتل خو الله ﷻ د هغه لاس شل کړو او هغه توره هډو راونه ويستله. کله چه ډير وخت اوشو نو د حضورﷺ نظر ناڅاپې د هغه طرف ته شونو حضورﷺ دا حالت ليدو باندې د هغه ځائ نه واپس لاړو. اوس دا دواړه د مدينې نه لاړل حره واقم ته راغله حصار شو خو سعدبن معاذﷺ او اسيدبن حضيرﷺ هلته اورسيدل او هغوی د هغه ځائ نه اوويستل. هم په واقم کښې وو چه په اربد باندې تندر راپريوتلو هغه خو هم هلته مردار شو او عامر د دې ځائ نه په تيښته لاړو خو خوريم ته رسيدلې وو چه په هغه کښې د طاعون غوټه راووتله. د بنو سلول قبيلې يو ښځې کره راحصار شو هغه به کله کله د خپل سټ غوټه باندې زور کولو او حيرانتيا سره به ئې ونيل چه ته خو داسې ئې لکه چه د اوښ وی افسوس زه به د سلوليه ښځې په کور کښې مړکيږم. څه به ښه وه چه زه په خپل کور کښې وم. آخر صبر نه شو او اس ئې راوغوښتو سور شواو لاړو ولې هم په لارکښې مردار شو. نوهم دهغه باره کښې دا آيت ﴿اَللّٰهُ یَعۡلَمُ﴾ نه ﴿مِنۡ وَّالٍ﴾ پورې نازل شو. په دې کښې دحضور ﷺ د حفاظت ذکر هم دې[1] بيا په اربد باندې د تندر پريوتول هم ذکر دې او ونې فرمانيل چه دوی د الله ﷻ باره کښې جګړې کوی د هغه عظمت او توحيد نه منی. حالانکه الله ﷻ خپلو مخالفانوته او منکرانو ته سخت عذاب او د برداشت نه بهر عذاب ورکونکې دې. نو دا آيت په شان د آيت ﴿وَمَكَرُوۡا مَكۡرًا وَّمَكَرۡنَا مَكۡرًا وَّهُمۡ لَا يَشۡعُرُوۡنَ﴾ دې. يعنی هغوی مکر اوکړو نو مونږ هم داسې اوکړه چه هغوی ته پته اونه لګيده. اوس خو ته اوګوره چه د هغوی دمکر انجام څه اوشو مونږ هغوی او د هغوی قوم غرق کړو. الله ﷻ سخت نيونکې دې ډير طاقتور دې او د پوره قوت او طاقت والا دې.

<table>
<tr><td colspan="6">لَهٗ دَعۡوَةُ الۡحَقِّ ؕ</td></tr>
<tr><td colspan="6">| هغهٔ د پاره ده بلنه د حق</td></tr>
<tr><td colspan="6">| هم د هغهٔ بلنه حقه ده</td></tr>
<tr><td>وَالَّذِیۡنَ</td><td>یَدۡعُوۡنَ</td><td>مِنۡ دُوۡنِهٖ</td><td>لَا یَسۡتَجِیۡبُوۡنَ</td><td>لَهُمۡ</td><td>بِشَیۡءٍ</td></tr>
<tr><td colspan="6">اوهغه هستياني| چې دوئ رابلې هغوئ| بې دالله نه|هغوئ جواب نشي ورکولې |دوئ ته|د هيڅ څيز</td></tr>
<tr><td colspan="6">او څوک چې د هغهٔ نه بغير نور خلق رابلې | نوهغوئ ورته هيڅ جواب ورکولې نشي</td></tr>
<tr><td>اِلَّا</td><td>کَبَاسِطِ</td><td>کَفَّیۡهِ</td><td>اِلَی الۡمَآءِ</td><td>لِیَبۡلُغَ</td><td></td></tr>
<tr><td colspan="6">مګرمثال ددوئ| ښان د غزونکی سرې دې|دواړولاسونو خپلولره| اوبو ته | د پاره ددې چې اورسيږی دغه اوبه</td></tr>
<tr><td colspan="6">مګر د هغه بنده په شان چې خپل دواړه لاسونه اوبو ته اوږدهٔ کړی| چې ددهٔ خلې ته راورسيږی</td></tr>
<tr><td>فَاهُ</td><td>وَمَا هُوَ</td><td>بِبَالِغِهٖ ؕ</td><td>وَمَا</td><td>دُعَآءُ الۡکٰفِرِیۡنَ</td><td>اِلَّا</td></tr>
<tr><td colspan="6">خلې د هغهٔ ته| حال دا چې نهٔ وی دغه|رسيدونکی هغهٔ ته | اونهٔ دی | دعاګانې دکافرانو | مګر</td></tr>
<tr><td colspan="6">حال دا دې چې هغه هيڅکله ده ته نشي رسيدلې | اودکافرانو بلنه خو بې اثره اوضائع ده</td></tr>
</table>

[1] طبرانی: ۱۰۷۶۰،مجمع الزوائد: ۴۲/۷

| فِي ضَلٰلٍ۝ |
|---|
| په ګمراهئ کښې دی |

قوله تعالى:: اِلَّاكَبَاسِطِ كَفَّيْهِ اِلَى الْمَآءِ

**دمشرکانو يو مثال:-** حضرت علیؓ بن ابی طالب فرمائی د الله ﷻ د پاره د حق دعوت دې دې نه مراد توحيد دې. محمد بن منکدر رحمه الله وائی مراد ﴿لااله‌الاالله﴾ دې. بيا د مشرکانو او کافرانو مثال بيان شو لکه څنګه چه يوسړې د اوبوطرف ته لاسونه خواره کړې وی اود هغه خُلې ته پخپله اورسی. نو داسې نه شی کيدې. دغه شان څنګه چه دا کافران چاته چغې وهی اود چا نه اميد ساتی هغوی د دوی اميدونه پوره کولې نه شی. او دا مطلب هم دې لکه څنګه چه يو سړې په خپل موټی کښې اوبه بند کړی نو هغه پاتې کيدې نه شی نو باسط په معنی د قابض دې. د عربئ په شعر کښې هم ﴿قابض‌ماء﴾ راغلې دې نو لکه څنګه چه اوبه په موټی کښې بندونکې او لکه څنګه چه د اوبو طرف ته لاس خورونکې د اوبونه محروم دی هم داسې دا مشرکان دې د الله ﷻ نه بغير نورو ته چغې وهی خو پاتې وی محروم. د دين او دنيا هيڅ فائده به ورته نه رسی اود هغوی چغې وهل بې فائدې دی.

| وَلِلّٰهِ | يَسْجُدُ | مَنْ | فِي السَّمٰوٰتِ |
|---|---|---|---|
| او خاص الله ته | سجده کوی | هغه څوك | چې په آسمانونو کښې دی |
| او په زمکه او آسمانونو کښې چې څوک دی په خوښه او | | | |

| وَالْاَرْضِ | طَوْعًا | وَّكَرْهًا | وَّظِلٰلُهُمْ | بِالْغُدُوِّ | وَالْاٰصَالِ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| او په زمکه کښې دی | په خوښه | او په ناخوښه | اوسوری د هغوئ | په صبا کښې | او په بيګاه کښې |
| يا په ناخوښه هم الله ﷻ ته سجده کوی \| او دهغوئ سيوری ورته هم سحر او ماښام سجده کوی | | | | | |

قوله تعالى:: وَلِلّٰهِ يَسْجُدُ

**هر څيز الله ﷻ ته سجده کوی:-** الله ﷻ خپل عظمت او سلطنت بيانوی چه هر څيز د هغه په وړاندې ټيټ دې اوهريو دهغه په سرکارکښې دخپلې عاجزئ څرګندونه کوی.مؤمن په خوشحالئ اوکافران په زور د هغه په وړاندې سجده کوی. دهغوی سورې سحر ماښام د هغه په وړاندې ښکته کيږی. اصال د اصيل جمع ده او په آيت کښې د دې بيان شوې دې. ارشاد دې﴿اَوَلَمْ يَرَوْا اِلٰى مَا خَلَقَ اللّٰهُ مِنْ شَيْءٍ يَّتَفَيَّؤُا ظِلٰلُهٗ﴾ يعنی آيا هغوی نه دی ليدلې ټول مخلوق د الله ﷻ په سوری کښې ښی او ګس طرف ته ښکته کيږی او الله ﷻ ته سجده کوی او د خپلې عاجزئ څرګندونه کوی.

| قُلْ | مَنْ | رَّبُّ السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ ط | قُلِ اللّٰهُ ط | قُلْ | اَفَاتَّخَذْتُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اووايه | څوك دې | رب د آسمانونو | او د زمکې | ورته اووايه چې الله دې | اووايه | آيا نواونيول تاسو |
| (انې نبیﷺ) تپوس ترې اوکړه \| چې دآسمانونو اود زمکې رب څوک دې \| ته ورته اووايه چې صرف الله دې \| ورته | | | | | | |

| مِّنْ دُوْنِهٖٓ | اَوْلِيَآءَ | لَا يَمْلِكُوْنَ | لِاَنْفُسِهِمْ | نَفْعًا | وَّلَا ضَرًّا ط |
|---|---|---|---|---|---|
| بې دالله نه | دوستان | چې اختيار نهٔ لری | د پاره د ځانونو خپلو | د نفعې | او نهٔ د نقصان |
| اووايه آيا تاسو دهغهٔ نه سوا نور دوستان نيولی دی\|چې هغوئ دخپل ځان دپاره دنفعې اوضرر اختيار هم نهٔ لری | | | | | |

| |
|---|
| قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الْأَعْمَى وَالْبَصِيرُ أَمْ هَلْ تَسْتَوِي الظُّلُمَاتُ |
| ورته اووایه \| ایا برابریدې شي \| روند \| او لیدونکی \| یا ایا \| برابر دی \| تیارې |
| ورته اووایه چې ایا روند او د سترګو خاوند چرې برابر کیدې شي \| یا تیارۀ او رڼا |
| وَالنُّورُ أَمْ جَعَلُوا لِلَّهِ شُرَكَاءَ خَلَقُوا كَخَلْقِهِ |
| او رڼا \| یا \| جوړکړې دی دوی \| الله د پاره \| شریکان \| چې پیدا کړې دی هغوی \| ایشان دپیدا کولو د الله |
| برابر کیدې شي \| اوکه دوئ الله دپاره داسې شریکان جوړکړې دی \| چې دالله د پیدا کولو په شان پیدا کول ئې کړې دی |
| فَتَشَابَهَ الْخَلْقُ عَلَيْهِمْ قُلِ اللَّهُ خَالِقُ |
| نو په دې وجه شکمن شو \| پیداوښت \| په دوئ باندې \| ورته اووایه \| چې صرف الله \| پیدا کونکې |
| نو په دې په دوئ باندې پیدائش ګډوډ شو (چې خپل خالق نۀ پیژنی) \| او وایه چې الله د هر څیز خالق دې |
| كُلِّ شَيْءٍ وَهُوَ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ﴿١٦﴾ |
| د هر څیز دې \| او هغۀ \| یودې \| په ټولو غالب دې |
| اوهغۀ یودې \| او په ټولو غالب دې |

**قوله تعالی:: أَمْ هَلْ تَسْتَوِي الظُّلُمَاتُ وَالنُّورُ**

**د حق او باطل یو مثال:-** دالله ﷻ نه علاوه څوك معبود برحق نشته او مشرکان هم ددې قائل دی چه د زمکې اوآسمان رب اومدبر هم الله دې خو سره د دې د نورو عبادت کوی. او هغوی ټول عاجز بندیګان دی د هغوی څه چه د خپل ګټې تاوان هم هغوی ته څه اختیار نشته. نو دوی اود الله ﷻ عبادت کونکی یوشان کیدې نه شي دوی خو په تیاروکښې دی او د الله ﷻ بندیګان په رڼا کښې. څومره فرق چه په روند کښې او کتونکی کښې او څومره فرق په رڼا او تیاروکښې دې هم دومره فرق په دې دواړو کښې دې. بیا فرمانی چه آیا د دوی د مشرکانو مقرر شوی شریك معبودان د هغوی په خیال کښې د څه څیز پیدا کونکی دی؟ چه په هغوی باندې دا تمیز کول ګران شوی دی چه د کوم څیز خالق الله دې اود کوم څیز خالق د هغوی معبودان دی. خو داسې نه ده د الله ﷻ په شان د هغه برابر اود هغه د مثل څوك نشته هغه د وزیر نه شریك نه اولاد او ښځې نه پاك دې. اود دغه ټولونه دهغه ذات اوچت دې. دا خو د مشرکانو پوره بې وقوفی ده چه خپل د دروغو معبودان د الله ﷻ پیدا کړې شوی د هغه ملکیت ګڼړلو سره بیا هم د هغوی په عبادت کښې اخته دی. لبیك ونیلو سره وائی اې الله مونږ حاضریو ستاڅوك شریك نشته ولې هغه شریکان چه هغه پخپله ستا ملکیت دې اود کوم څیز چه هغوی مالکان دی هغه هم په حقیقت کښې هم ستا ملکیت دې. (١)

**مشرکان خپل معبودان سفارشیان ګڼړی::** قرآن په یو بل ځائ کښې د هغوی خبره بیان کړې ده فرمانی چه ﴿مَا نَعْبُدُهُمْ إِلَّا لِيُقَرِّبُونَا إِلَى اللَّهِ زُلْفَىٰ﴾ یعنی مونږ خو دهغوی عبادت صرف په دې لالچ کوو چه دوی مونږ الله ﷻ ته نزدې کړی. دهغوی د دې عقیدې دمرنی رګ ماتولودپاره د الله ﷻ ارشاد اوشو چه د هغه په وړاندې څوك هم د هغه د اجازت نه بغیر شونډې نه شی خوزولې تر دې چه د آسمان فرښتې هم شفاعت د هغه د اجازت نه بغیر نه شی کولې. په سورۀ مریم کښې اوفرمائیل د زمکې او آسمان ټول مخلوق دالله ﷻ په وړاندې غلامان جوړیدونکی راروان دی. ټول د الله ﷻ په نظر کښې اودهغه په

(١) صحیح مسلم: کتاب الحج باب التلبیة وصفتها ووقتها: ۱۱۸۵، المعجم الکبیر: ۱۲۸۸۳.

شمیرکښې دی.اوهر یو به د قیامت په ورځ خان له ځان له حاضری ورکونکی دی نو چه کله ټول په ټول انسانان د غلامانو په حیثیت کښې یو شان دی نو بیا یو د بل عبادت کول لوئ حماقت او ښکاره بې انصافی نه ده نو څه دی؟ بیا الله ﷻ درسولانو سلسله د دنیا دشروع کیدونه جاری اوساتله. هر یو خلقو ته رومبې سبق داورکړو الله یودې هم هغه د عبادت لاتق دې دهغه نه بغیربل څوك دعبادتو لاتق نه دی. خونه هغوی دخپل اقرارخیال اوساتلو اونه ئې د رسولانودمتفقه تعلیم څه لحاظ اوکړوبلکه مخالفت ئې اوکړو رسولان ئې دروغ اوګنړل نود عذاب کلمه په هغوی باندې صادق راغله اوداد رب ظلم نه دې.

اَنۡزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً

| الله نازلې کړې | د اسمان نه | اوبه

هغهٔ پورته نه اوبه راوروی

فَسَالَتۡ اَوۡدِيَةٌۢ بِقَدَرِهَا فَاحۡتَمَلَ السَّيۡلُ زَبَدًا رَّابِيًا ؕ

نواوبهیدلې | لختی اونالې | مطابق د اندازې خپلې | نو راواخستو | دې سیلاب | زګ | په سر د اوبو

چې دهغې په اندازه خوړونه اوبهیدل |...........نوسیلاب د اوبو په سر باندې دا زګ راپورته کړو

وَمِمَّا يُوۡقِدُوۡنَ عَلَيۡهِ فِى النَّارِ ابۡتِغَآءَ حِلۡيَةٍ

او خینی دهغه څیزونو نه | چې بلوی اور دا خلق | په هغې باندې | په اور کښې | د پاره د جوړولو | دکالو

دکالو یا دلوښو جوړولو د پاره څه چې دوئ په اور کښې ګرموی | ...........په هغې

اَوۡ مَتَاعٍ زَبَدٌ مِّثۡلُهٗ ؕ كَذٰلِكَ يَضۡرِبُ اللّٰهُ الۡحَقَّ وَالۡبَاطِلَ ؕ

یا د نور سامان | زګ | پشان د هغې زګ | دا رنګې | بیانوی الله | حق | او باطل

باندې هم دغسې زګونه راخیژی | ...........دغه شان الله ﷻ دحق او باطل مثالونه بیانوی

فَاَمَّا الزَّبَدُ فَيَذۡهَبُ جُفَآءً ۚ وَاَمَّا مَا

نوهر چې دې | هغه زګ د اوبو | نو الوزی هغه | په وچیدو سره | او هر چې | هغه څیز دې

نوزګونه خو هسې بیکاره لاړ شی (څکه چې څه وخت پس پخپله ختم شی) | او کوم څیز چې خلقو ته

يَنۡفَعُ النَّاسَ فَيَمۡكُثُ فِى الۡاَرۡضِ ؕ كَذٰلِكَ يَضۡرِبُ اللّٰهُ

چې فائده رسوی | خلقوته | نو پاتې کیږی هغه | په زمکه کښې | دا رنګې | بیانوی | الله

فائده ورکوی | نو هغهٔ په دنیا کښې باقی پاتې شی |........... الله ﷻ هم دغه شان

الۡاَمۡثَالَ ؕ

مثالونه |

مثالونه بیان فرمائی

قوله تعالی:: فَاَمَّا الزَّبَدُ فَيَذۡهَبُ جُفَآءً

**دحق پاتې کیدل اوباطل ختمیدل:-** دحق او باطل د فرق،دحق د باقی پاتې کیدو اودباطل دختمیدو دوه مثالونه بیان فرمانیلوسره چه الله ﷻ د وریخونه باران راوروی او چینو دریابونو ولو لختو په ذریعه د

باران اوبه بهیږي. په چا کښې زیاتې چا کښې کمې څوك لوئ څوك وړې. دا مثال دي دزړونو او د هغوی د تفاوت څوك آسماني علم ډیر زیات اخلي څوك کم بیا د اوبو په دې مخ زګ تیریږي یو مثال خو دا شو دونم مثال د سرو زرو سپینو زرو اوسپنې تانبې دې چه دا په اورکښې ګرمولې شي. سره او سپین زر د کالو او اوسپنه او تانبه د لوښو وغیره د پاره، په دې کښې هم زګ وي. نو لکه څنګه چه ددې دوارو څیزونو زګ ختمیږي دغه شان باطل چه کله په حق باندې راخوریږي اخرختمیږي او حق ترې بهر راوځي لکه څنګه چه اوبه خوټکولو سره صفا کیږي او لکه څنګه چه سره زر او سپین زر ګرمولې شي خیرې جدا کولې شي.اوس دسرو او سپینو زرواو اوبو وغیره نه خو خلق فائدې اوچتوي او په دې چه کوم خیرې او زګ راغلي وو د هغې نوم او نښه هم نه پاتې کیږي الله ﷻ د خلقو د پوهه کولو د پاره څومره صفاصفا مثالونه بیانوي چه دوی سوچ اوکړي او پوهه شي لکه چه فرمائیلي دي موږ دا مثالونه د خلقو په وړاندې بیانوو خو په دې باندې علماء ښه پوهیږي.(١)

**دقران پاک په مثالونو پوهیدل پکاردي:** :دبعضې سلفو په پوهه کښې چه کله یو مثال نه راتلو نو هغوی به ژړل ځکه چه په دې نه پوهیدل د علم نه خالي خلقو صفت وو. ابن عباس ؓ فرمائي په رومبي مثال کښې بیان دې د هغه خلقو د پاره د چا زړه چه په یقین سره د الله ﷻ د علم حامل وي او بعضې زړونه هغه هم دي په کوموکښې چه شك باقي وي نود شك سره عمل بې فائدې دې یقین پوره فائده ورکوي.

**ایت مبارک زَبَدٌ معنی د شك ده:** : ﴿زَبَدٌ﴾ نه مراد شك دې چه بې کاره څیز دې یقین دکار څیز دې کوم چه باقي پاتې کیدونکې لکه څنګه چه کالي په اور کښې ګرمولې شي نو خیرې ترې سوزي او صفا څیز باقي پاتې کیږي دغه شان د الله ﷻ په نیز یقین مقبول دې او شك مردود دې نو چه څنګه اوبه باقي پاتې شوې او د ځکلو وغیره په کارکښې راځي او څنګه چه سره او سپین زر اصلي پاتې شو او د کالو وغیره په کار راځي او لکه څنګه چه تانبه او اوسپنه وغیره باقي پاتې شوه اود هغې نه سامانونه جوړیږي دغه شان نیك اعمال عمل کونکي ته فائده ورکوي او باقي پاتې کیږي. په هدایت او حق باندې څوك عمل کونکي پاتې شو هغوی ګټه مومي لکه څنګه چه د اوسپنې نه چاړه او توره وغیره بغیر دګرمولو نه نه جوړیږي دغه شان د شك ریاکارئ اوباطل عملونه د الله ﷻ په نیز دکار نه شي جوړیدې. د قیامت په ورځ به باطل ضائع کیږي او اهل حق ته به حق ګټه ورکوي. د سورة بقره په شروع کښې د منافقانو دوه مثالونه الله ﷻ فرمائیلي دي یود اوبو او بل د اور.

په سورة نورکښې دکافرانو دوه مثالونه بیان اوفرمائیل یو ﴿سَرَابٍ﴾یعني د شګې دونم د سمندر د بیخ، د تیاروشګې دګرمئ موسم کښې د لرې نه بالکل د چپو په شان اود دروغو د اوبو په شان معلومیږي. نو د بخاري او مسلم شریف په حدیث کښې دی د قیامت په ورځ به د یهودیانونه تپوس کیږي تاسو څه غوارئ؟ هغوی به وائي ترې یو اوبه غوارو نو هغوی ته به اوونیلې شي نو بیا ځئ ولې نه؟ نو دوزخ به ورته داسې ښکاري لکه دنیا کښې دشګومیدان. (٢)په دونم آیت کښې اوفرمائیل﴿أَوْكَظُلُمَاتٍ فِي بَحْرٍ لُجِّيٍّ﴾.

**په حدیث کښې د توحید او علم مثال:** :په بخاري اومسلم کښې درسول الله ﷺ فرمان دې چه د کوم هدایت اوعلم سره الله ﷻ زه رالیږلې یم د دې مثال د هغه باران په شان دې چه په زمکه اووریږي نو د زمکې یوې حصې خو اوبه قبولې کړې او واښه او ګیاه وغیره ئې راوټوکول بعضې زمکه جاذبه یعني راښکونکې وه اوبه ئې بندې کړې نو الله ﷻ د هغې نه هم خلقو ته نفع وراورسوله. اوبه د هغوی د څکلودپاره اود فصل پکار راغلې او د زمکې بله ټکړه سخته او غریزه وه، نه په هغې کښې اوبه

---

(١) ٢٩/العنکبوت:٤٣.
(٢) صحیح بخاری کتاب التفسیر باب قوله ﴿ان الله لایظلم مثقال ذرة﴾٤٥٨١، صحیح مسلم:١٨٣، الایمان لابن منده:٨٠٣/٢.

اودریدې اونه هلته څه پیدا شو. دا مثال د هغوی دې چاچه په دین کښې پوهه حاصله کړه اوزمه د رالیږلو نه الله ﷺ هغه ته فائده اورسوله هغه پخپله علم زده کړو او نورو ته نې اوخودلو او مثال دې د هغوی د پاره چا چه د هغې د پاره سر هم اوچت نه کړو او نه نې د الله ﷺ هغه هدایت قبول کړو کوم سره چه زه رالیږلې شوې یم نو هغه په مثال د هغه غریزې زمکې دې (۱)

**بل مثال:**:او په حدیث شریف کښې دی زما او ستاسو مثال داسې د هغه سړی په شان دې چا چه اُور اولګولو او هغه سره خواوشا څیزونه نې روښانه کړل نو پتنګان او چینجی وغیره په هغې کښې پریوتل او خپل خان نې قربان کولو هغه دوی په هرقسم بندوی خو په دې باندې هم هغوی هم هغه شان پریوزی بالکل هم دغه مثال زما او ستاسو دې چه زه ستاسو ملاګانې شاګانې رانیسم تاسو بندوم او وایم چه د اُور نه اخوا شئی خو تاسو زما نه اورئی نه منئی مانه په خلاصیدو خلاصیدو اُور کښې پریوځئی. نو په حدیث شریف کښې هم د اُور او اوبو مثال راغلې دې.

| لِلَّذِيْنَ | اسْتَجَابُوْا | لِرَبِّهِمُ | الْحُسْنٰىؕ | وَالَّذِيْنَ |
|---|---|---|---|---|
| دپاره د هغه کسانو | چې قبول نې کړو دعوت | د رب خپل | ده بدله نیکه | او هغه کسان |
| | چاچې دخپل رب خبره اومنله | | هغوئ دپاره ښهٔ بدله مقرر ده | اوچا چې |

| لَمْ يَسْتَجِيْبُوْا | لَهٗ | لَوْاَنَّ لَهُمْ | مَّا | فِي الْاَرْضِ | جَمِيْعًا |
|---|---|---|---|---|---|
| چې قبول نې نهٔ کړو دعوت | د هغهٔ | که چرې وی هغوئ لره | هغه څه | چې په زمکه کښې دی | ټول |
| د هغه خبره اونه منله | | ........که د دنیا ټول څیزونه د هغوی ملکیت شی | | | |

| وَّمِثْلَهٗ | مَعَهٗ | لَافْتَدَوْا | بِهٖؕ | اُولٰٓئِكَ | لَهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوپه مثل دهغې | دهغې سره | نوخامخا به فدیه کښې ورکړی | دغه ټول | داکسان چې دی | مقرردې د پاره د دوئ |
| اودومره قدرې ورسره نور هم شی | | نو هغوئ به ئې په فدیه کښې ورکولو ته تیار شی | | | دهغوئ |

| سُوْٓءُ | الْحِسَابِ ۙ۬ | وَمَاْوٰىهُمْ | جَهَنَّمُ ؕ | وَبِئْسَ | الْمِهَادُ |
|---|---|---|---|---|---|
| سخت | حساب | او خائې داستوګنې د دوئ | دوزخ دې | او ډیر بد خائې دې | د آرام |
| حساب به ډیرسخت وی | | اودهغوئ تیکانړه به دوزخ وی | | اوهغه ډیر خراب خائې دی | |

**قوله تعالیٰ:: لِلَّذِیْنَ اسْتَجَابُوْا لِرَبِّهِمُ الْحُسْنٰیؕ**

**دنیک کاربدله ښه اودبدکاربدله خرابه:**- دنیکانواوبدانوانجام بیانیږی دالله اورسول منونکی د احکامو پابندپه خبرو باندې یقین ساتونکی خوبه نیکې بدلې بیامومی. ذوالقرنین فرمانیلی وو چه ظلم کونکو ته به مونږ هم سزا ورکوو او الله ﷺ به هم ورته سخت عذاب ورکوی او ایماندار او نیک عملونه کونکی به ښکلې بدله بیاموموی او مونږ به هم هغوی سره نرمې خبرې کوو او په آیت کښې د الله ﷺ فرمان دې د نیکانو د پاره نیکه بدله دې او زیاتوالې هم. بیا فرمائی چه کوم خلق د الله ﷺ خبرې نه منی دوی به د قیامت په ورځ داسې عذابونه وینی که هغوی سره ټوله زمکه هم د سرو زرو نه ډکه وی نو هغوی به نې په خپله فدیه کښې ورکولو د پاره تیار شی بلکه د هومره نورهم. خو د قیامت په ورځ به نه فدیه

---

(۱) صحیح بخاری کتاب العلم باب فضل من علم وعلم:۷۹، صحیح مسلم: ۲۲۸۲، احمد:۹۹/۴، ابن حبان:۴، مسندالبزاز:۳۱۶۹،السنن الکبری: ۴۲۷۱۳، مسندابی یعلی:۷۳۱۱.

وي نه بدله نه عوض او نه معاوضه وي اود هغوی نه سخت تپوس پوښتنه کیږي. د یو یو پوستکي او یو یو دانې حساب به اخستې شي (۱) که په حساب کښې پوره نه شونو عذاب به وي دوزخ به د هغوی ځای وي چه ډیر بد ځای به وي.

| أَفَمَن | يَعْلَمُ | أَنَّمَا | أُنزِلَ | إِلَيْكَ | مِن رَّبِّكَ |
|---|---|---|---|---|---|
| آیانو هغه څوك | چې پوهیږي | چې بیشکه هغه کتاب | چې نازل کړې شوې دې | تاته | د طرفه د رب ستانه |
| آیا څوك چې دایقین ساتي | | چې تا ته د خپل رب د طرفنه کوم (کتاب) نازل شوې دې | | | |
| الْحَقُّ | كَمَنْ | هُوَ | أَعْمَىٰ | إِنَّمَا | يَتَذَكَّرُ |
| هغه حق دې | پشان د هغه | چاکیدې شی | چې هغه | روند دې | بیشکه خبره هم داده / چې نصیحت قبلوی |
| هغه حق دې | نو دا کس د هغه چا په شان کیدیشي | | چې روند وي | نصیحت خو صرف دپوهې | |
| أُولُو الْأَلْبَابِ | | | | | |
| خاوندان دعقل | | | | | |
| خاوندان قبلوی | | | | | |

قوله تعالی: أَفَمَن يَعْلَمُ

**د مؤمن اومشرک مثال:** ارشاد کیږي چه یو هغه سړې څوك چه د الله ﷻ کلام چه د هغوی طرف نه نازل شو بالکل حق ګڼړي او په ټولو ایمان ساتي یو د بل تصدیق کونکې او موافقت والا ګڼړي. ټولې خبرې رښتیا ګڼړي ټول حکمونه منی ټولې بدنی بدې ګڼړي ستا د تصدیق قائل وي. او بل هغه سړې چه نابینا وي ښیګړه هډو پیژنی نه او که ونی پیژنی هم نو منی نه او نه نی رښتونې ګڼړي نو دا دواړه برابر کیدې شی لکه چه فرمان دې دوزخي او جنتي برابر نه دی. جنتي خوش نصیب دې. (۲) دغه فرمان دلته دې چه دا دواړه برابر نه دی خبره دا ده چه ښه پوهه هم د پوهه خلقو وي.

| الَّذِينَ | يُوفُونَ | بِعَهْدِ اللَّهِ | وَلَا يَنقُضُونَ | الْمِيثَاقَ |
|---|---|---|---|---|
| هغه کسان دی | چې پوره کوی | وعده دالله | اونهٔ ماتوی هغوی | هغه پخه وعده |
| څوك چې دالله ﷻ سره کړې وعده پوره کوی | | | اوهغوی وعده نهٔ ماتوی | |
| وَالَّذِينَ | يَصِلُونَ | مَا | أَمَرَ اللَّهُ | بِهِ | أَن يُوصَلَ |
| اوهغه کسان دی | چې پیوست کوی | هغه څیز | چې حکم کړې دې الله | په هغې سره | چې پیوست دې کړې شي |
| اوڅوك چې هغه خپلولۍ پالي | د کومو د پالنې چې الله ﷻ حکم کړې دې | | | | |
| وَيَخْشَوْنَ | رَبَّهُمْ | وَيَخَافُونَ | سُوءَ | الْحِسَابِ | وَالَّذِينَ | صَبَرُوا |
| او ویریږي | د رب خپل نه | او ویره کوی | د سختئ | د حساب نه | او هغه کسان دی | چې صبر کوی |
| او دخپل رب نه ویریږي | اود حساب د سختئ نه ویریږي | | | | او څوك چې د خپل رب د راضي کولو په تلاش کښې | |

(۱) صحیح بخاری کتاب التفسیر باب (فسوف یحاسب حسابا یسیرا): ۴۹۳۹، صحیح مسلم: ۲۸۷۶، ابن حبان: ۷۳۷۰، احمد ۶/۱۲۷.

(۲) ۵۹/الحشر: ۲۰.

ابْتِغَآءَ وَجْهِ رَبِّهِمْ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاَنْفَقُوْا مِمَّا رَزَقْنٰهُمْ

د پاره د طلب|درضا| درب خپل|اوقائموی| مونځ | اوخرچ کوی| خینی د هغې نه|چې ورکړې دی مونږ هغوئ له

صبر کوی| اوخوک چې مونځونه کوی | او زمونږ د ورکړې رزق نه (د نیکئ په لار کښې)

سِرًّا وَّعَلَانِيَةً وَّيَدْرَءُوْنَ بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ

په پټه | او په ښکاره | او دفع کوی | په نیکئ سره | بدی | دا کسان چې دی | دې د دوئ د پاره

په پټه اوپه ښکاره خرچ کوی|اود نیکو په ذریعه بدئ ختموی | هم دا هغه خلق دی | کومو د پاره

عُقْبَى الدَّارِ ﴿٢٢﴾ جَنّٰتُ عَدْنٍ يَّدْخُلُوْنَهَا وَمَنْ

ښهٔ انجام | داخرت | چې جنتونه | د همیشوالی دی | چې دوئ به داخلیږی هغې ته | او هغه څوک

چې د اخرت کور دې | یعنې د همیشه اوسیدو باغونه دی | کومو ته چې به دوئ پخپله

صَلَحَ مِنْ اٰبَآئِهِمْ وَاَزْوَاجِهِمْ وَذُرِّيّٰتِهِمْ وَالْمَلٰٓئِكَةُ

چې صالحان وی |د پلارانو د هغوئ نه | او د ښځو د هغوئ نه | او د اولاد د هغوئ نه | او فرښتې

او د دوئ په پلار نیکه او ښځو او اولاد کښې چې څوک نیکان وی هغوی داخلیږی | اوفرشتې

يَدْخُلُوْنَ عَلَيْهِمْ مِّنْ كُلِّ بَابٍ ﴿٢٣﴾ سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ بِمَا

به ورداخلیږی په هغوئ باندې| د هرې |دروازې نه| ورته به وائي چې سلام دې|په تاسو باندې| په سبب د هغې

به ورته دهرې یوې دروازې نه استقبال ته راځي | او ورته بهٔ وائي چې سلامت اوسئ | ځکه چې تاسو

صَبَرْتُمْ فَنِعْمَ عُقْبَى الدَّارِ ﴿٢٤﴾

چې صبر اوکړوتاسو| نوخومره ښهٔ دې| انجام داخرت|

به صبر کولو | نو په دې جهان کښې مو انجام ښهٔ شو |

قوله تعالی:: اَلَّذِيْنَ يُوْفُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ

**دمؤمنانو بندګانو نیک صفتونه:-** دهغه بزرګانو صفتونه بیانیږی اودهغوی د ښه انجام خبر ورکړې کیږی چه په آخر کښې به د جنت مالکان جوړیږی او دلته هم چه کوم نیك انجام دې هغوی د منافقانو په شان نه وی چه وعده خلافی او غداری او بې وفانی اوکړی.

**د منافق خصلت::** دادمنافق خصلت دې چه وعده اوکړی ماتوی په جنګ کښې کنځلې کوی په خبرو کښې دروغ وائی اوِ امانت کښې خیانت کوی، د صله رحمنی رشته دارانو سره سلوك فقیر او محتاج له ورکولو ښو خبرو پوره کولو کوم حکم چه د الله ﷻ دی دوی په هغې عمل کونکی دی، د رب ویره نی په زړه کښې دکه شوې ده. نیکئی کوی د الله ﷻ حکم کنړلو سره. بدنی پریږدی د الله ﷻ فرمان ګنړلو سره. د آخرت د حساب ویره ساتی په دې وجه د بدو نه بچ کیږی. د نیکو طرف ته تګ کوی، د اعتدال لارې نه پریږدی په هرحال کښې د الله ﷻ د فرمان لحاظ ساتی. که حرامو کارونو اود الله ﷻ نافرمانو طرف ته نی نفس راکاږی هم خو دوی هغه منع کوی او د آخرت ثواب وریادولو سره د الله ﷻ د رضا غوښتونکی دنافرمانیانونه منع کیږی. دمونځونو پوره حفاظت کوی. د رکوع او سجدې په وخت کښې خشوع او خضوع په شرعی توګه په خائ راوړی چاته چه ورکولو الله ﷻ فرمائیلی دوی ته د الله ﷻ ورکړلې شوی خیزونه ورکوی. فقیران مسکینان او محتاجان که خپل وی که پردی د هغوی د

بركتونونه محروم كيږي نه. په پټه ښكاره د شپې ورځې وخت بې وخته د الله ﷻ په لار كښې خرچ كوي. قباحت په احسان سره بدي په نيكئي سره او دښمني په دوستئي سره بدلوي. كه بل سركشي كوي نو دوي نرمي كوي. كه بل سراوچت كړي نو دوي سر ښكته كړي.دنورو ظلمونه برداشت كوي او پخپله ښه سلوك كوي.

**په ښه طريقه دښمن دوست جوړوه::** د قرآن تعليم دې ﴿ادْفَعْ بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ﴾ الخ ډير په ښه طريقه باندې واړوه نو ښه دښمن به هم دوست جوړ شي. صبر كونكي د نصيب خاوندان هم دې مرتبې ته رسي د داسې خلقو د پاره ښه انجام دې. هغه ښه انجام او بهترين كور جنت دې چه د هميشه د پاره پاتې كيدونكې دې.

**د جنت ښار::** حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ فرمائي چه د جنت ديو محل نوم عدن دې په كوم كښې چه بُلونه او بالاخانې دي، د كوم چه پنځه زره دروازې دي په هره دروازه باندې پنځه زره فرښتې دي هغه مخصوص محل دې د انبياؤ صديقينو او شهيدانو د پاره. ضحاك ﷺ وائي دا د جنت ښاردې په كوم كښې چه به انبياء وي شهداء وي او د هدايت آئمه به وي او هغوي سره به خواوشا نور خلق وي او د دې نه ګير چاپيره به نور جنتونه وي. هلته به هغوي خپل او خوښ خلق هم خپل خان سرهويني. د هغوي مشران پلاران نيكونه اود هغوي خامن او نمسي اود هغوي جوړې چه ايماندار او نيكان وو هغوي سره به وي او په مزوكښې به سر وي په څه سره به چه د هغوي سترګې يخې وي. تردې چه كه د چا اعمال هم دې اوچتو درجوته د رسيدو قابل هم نه وي نو الله ﷻ به د هغوي درجې اوچتې كړي او اوچتو منزلو ته به ئې اورسوي. لكه ﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُمْ بِإِيمَانٍ أَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ الخ﴾. د كومو ايماندارو اولاد چه د هغوي تابعداري په ايمان كښې كوي مونږ هغوي هم هغوي سره يوځائ كوو الخ. هغوي له به د مباركبادئي اوسلام د پاره د هرې هرې دروازې نه هر هر وخت فرښې راځي او دا هم د الله ﷻ انعام دې دپاره چه هر وخت خوشحاله وي او زيرې اوري. د نبيانو شهيدانو او صادقانو ګاونډتوب د فرښتو سلام اود جنت فردوس مقام.

**جنت ته به اول څوك ځي؟::** د مسند په حديث شريف كښې دي چه په دې پوهيږې هم چه اول به جنت ته څوك ځي؟ خلقو وئيل الله ﷻ ته علم دې اود هغه رسول الله ﷺ ته وئې فرمائيل د ټولو نه اول جنتيان مسكينان او مهاجرين دي څوك چه د دنيا د خوندونو نه لرې وو. څوك چه په تكليفونوكښې وو. د چا اميدونه چه هم په زړونوكښې پاتې شواو قضاشو.

**په فرښتودجنتيانو فضيلت::** درحمت فرښتوته به دالله ﷻ حكم وي چه حنې لاړې شئ هغوي ته مباركي ورکړئ. هغوي به وائي اې الله! مونږ خو ستا د آسمانونو اوسيدونكي بهترين مخلوق يو آيا ته مونږ ته حكم راكوې چه مونږ لاړې شو او هغوي ته سلام اوكړو او هغوي ته مباركي ورانډې كړو. الله ﷻ به جواب وركړي دا زما هغه بنديګان چا چه صرف هم زما عبادت كړې وو زما سره ئې څوك شريك كړې نه وو د دنياوي مزو نه محروم وو. په مصيبتونوكښې اخته وو هيڅ مراد ئې پوره شوي نه وو او دا صابر اوشاكر وو نو اوس به فرښتې په منډه منډه او په شوق هغوي طرف ته ورځي د اخوا ديخوا هرې يوې دروازې نه ورننوځي او سلام به كوي او مباركي به وركوي.(1)

**جنت ته به اول درې قسمه خلق ځي::** طبراني كښې دي چه د ټولو نه اول به درې قسمه خلق ورځي. فقيران او مسكينان چه په مصيبتونوكښې اخته وو كله چه هغوي ته كوم حكم ملاؤ شو پوره ئې كړو د دوي به بادشاهانونه ضرورتونه ووخو د مرګ د وخته پورې پوره نه شو.

---

(1) احمد:۲/۱۶۸ وسنده حسن، مجمع الزوائد: ۲۵۹/۱۰.

**د جهاديانو فضيلت**::جنت به د قيامت په ورځ خپلې مخې ته راوبلي، هغه به ډير ښكلي د خپلو نعمتونو او تازګوسره حاضر شي هم هغه وخت به آواز اوشي چه زما هغه بنديګان چه زما په لاركښې جهادونه كول زما په لاركښې به زورلې كيدل او زما په لاركښې جنګيدل ګرځيدل هغه چرته دي. راشئ بغير د حساب نه او عذاب نه جنت ته لاړشئ هغه وخت به فرښتې د الله ﷻ په وړاندې په سجده كښې پريوزي او عرض به كوي اې پروردګاره مونږ خو سحرماښام ستا په تسبيح او تقديس كښې اوسيدو دا څوك دى چاله چه دې په مونږ باندې هم فضيلت وركړو. الله ﷻ به اوفرمائي دا زما هغه بنديګان دي چا چه زما په لاركښې جهاد كړې وو زما په لاركښې تكليفونه برداشت كړي نو فرښتې به زرزر په هره دروازه كښې هغوى له اورسى سلام به كوي او مباركي به وركوي چه تاسو ته ستاسو د صبر څومره ښه بدله ملاوشوه([1])حضرت ابوامامه ﷺ فرمائي چه مؤمن به په جنت كښې په خپل تخت باندې ښه په آرام ډير په شان سره تكيه لګولې ناست وي د خادمانو قطار به يوخوا بل خوا ولاړ وي چه د دروازې والا د خادم نه به فرښتې اجازت غواړي هغه به دونم خادم ته وائي هغه به بل او هغه به بل ته تردې چه مؤمن نه به تپوس كيږي. مؤمن به اجازت وركړي چه دا راپريږدئي دغه شان به يو بل ته پيغام رسوي او آخرى خادم به فرښتې ته اجازت وركوي او دروازه به كولاويږي هغه به راځي اوسلام به كوي اوځي به. په يو روايت كښې دي چه حضور ﷺ به دهركال په شروع كښې دشهيدانو قبرونو له راتلو او ونيل به ئي ﴿ سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ بِمَا صَبَرْتُمْ فَنِعْمَ عُقْبَى الدَّارِ ﴾([2])اودغه شان به ابوبكرعمر عثمان ﷺهم (ددې سندصحيح نه دي)

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَالَّذِيْنَ | يَنْقُضُوْنَ | عَهْدَ اللّٰهِ | | | |
| او هغه كسان | چې ماتوى هغوئ | وعده د الله | | | |
| او څوك چې د الله ﷻ سره كړې وعده | | | | | |
| مِنْۢ بَعْدِ | مِيْثَاقِهٖ | وَيَقْطَعُوْنَ | مَآ | اَمَرَ اللّٰهُ | بِهٖٓ |
| روستو | دمحكموالى دهغې نه | او پريكوى | هغه رابطې | چې حكم كړې دې الله | په هغې سره |
| د پخولو نه پس بياماتوى | اود كومې (رشتې) چې الله ﷻ د پالنې حكم وركړې دې | | | | |
| اَنْ يُّوْصَلَ | وَيُفْسِدُوْنَ | فِي الْاَرْضِ | اُولٰٓئِكَ | لَهُمُ | اللَّعْنَةُ |
| چې يوځاني دې كړې شي | او فساد كوى | په زمكه كښې | داكسان چې دي | ادې د دوئ د پاره | لعنت |
| هغه نه پالي | اوپه زمكه كښې فساد جوړوى | ......... په داسې خلقو لعنت وريږي | | | |
| وَلَهُمْ | سُوْٓءُ | الدَّارِ | | | |
| او ده د دوئ دپاره | سختى | د آخرت | | | |
| او ددې خلقو انجام خراب دې | | | | | |

**قوله تعالى**:: وَالَّذِيْنَ يَنْقُضُوْنَ عَهْدَ اللّٰهِ

**د خرابوبنديګانو صفتونه**.دمؤمنانو صفتونه پورته بيان شو چه هغوى د وعدې پوره او رشتو او تعلقاتو يو ځائ كونكى دي بيادهغوى اجربيان كړې شو چه هغوى به دجنتونو مالكان وي. اوس دلته ته د هغه

---

[1] احمد:۲/۱۶۸وسنده حسن،ابن حبان:۷۴۲۱، مجمع الزوائد: ۱۰/۲۵۹، حاكم:۲/۷۱..

[2] الطبرى: ۲۰۳۴٤.

بد نصيبوذكر كولې شي چه د هغوی خلاف خصلتونه ئې لرل. نه به نې د الله ﷻ د وعدو لحاظ كولونه صله رحمي او نه دالله تعالى د احكامو دپابندئي خيال ساتلو. دا لعنتي ډله ده اود خراب انجام والا دى. په حديث كښې دى د منافق درې نښې دي په خبرو كښې دروغ وئيل د وعدو خلاف كول او امانت كښې خيانت.په يو بل حديث كښې دى په جګړو كښې كنځل كوى د دې شان والا خلق د الله ﷻ د رحمت نه لرې دى. د دوى انجام خراب دې. دا دوزخي ډله ده.دا شپږ خصلتونه دى چه د منافقانونه د خپلې غلبې په وخت كښې ښكاره كيږي. په خبرو كښې دروغ وعده خلافي امانت كښې خيانت د الله ﷻ وعده ماتول د الله ﷻ دملاوولودحكم څيز نه ملاوول په ملك كښې فساد خورول او دا چه كله مغلوبه وى نو بيا هم دروغ وعده خلافي او خيانت كوى.

| اَللّٰهُ | يَبْسُطُ الرِّزْقَ | لِمَنْ | يَّشَآءُ |
|---|---|---|---|
| الله | فراخه كوى / رزق | د پاره د هغه چا | چې غواړى هغه |
| الله ﷻ چې چاته اوغواړى نو روزى ورته فراخه وركوى | | | |

| وَيَقْدِرُ | وَفَرِحُوْا | بِالْحَيٰوةِ الدُّنْيَا | وَمَا | الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا |
|---|---|---|---|---|
| او تنګوى هغه | او خوشحاله دى داخلق | په ژوند د دنيا كښې | حالاتكه نه دې | ژوند د دنيا |
| او چاته چې اوغواړى نو(روزى ئې) تنګه كړى | اودوئ د دنيا په ژوند خوشحاليږى | اود دنيا ژوند | | |

| فِي الْاٰخِرَةِ | اِلَّا | مَتَاعٌ ﴿۲۶﴾ |
|---|---|---|
| په مقابله داخرت كښې | مګر | لږ سامان دې |
| داخرت په مقابله كښې لږ سامان دې | | |

قوله تعالى:: وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا فِي الْاٰخِرَةِ اِلَّا مَتَاعٌ ﴿۲۶﴾

د دنيا حقيقت:-الله ﷻ چه د چا په رزق كښې وسعت وركول غواړى قادر دې، چاته چه تنګ رزق وركول غواړى قادر دې. دا هر څه په حكمت او عدل سره كيږى. د كافرانو په دينا باندې اسرا اوشوه او دوى د آخرت نه غافل شو دائې اوګڼړل چه د دې ځائ وسعت څه حقيقى او ښه څيز دې حالاتكه دا خو مهلت دې اود شروع نه به په مزه سره نيول كيږى خو هغوى ته هيڅ تميز نشته. مؤمنانوته چه كوم آخرت ملاويدنكي دې د هغې په مقابله كښې خوداهيڅ د ذكر قابل څيز نه دې.دا ډير كمزورى او سپك څيز. آخرت ډير لوئ او بهتر څيز خو ولې په عام توګه خلق دنيا له په آخرت باندې ترجيح وركوى. حضور ﷺ خپله د كلمې ګوتې سره اشاره اوكړه او وئې فرمائيل چه دا په سمندركښې ډوبه كړئى نو اوګورئى چه په دې كښې به څومره اوبه راشى؟ څومره چه دا اوبه د سمندر په مقابله كښې دى هم دومره دنيا د آخر په مقابله كښې ده.(مسلم) [1]يو د ورو ورو غوږو والا دچيلئي مړ شوې بچې په لار كښې پروت ليدو سره حضور ﷺ اوفرمائيل لكه څنګه چه دا د هغه خلقو په نيز دې چه دا د چا وو دې نه هم ډير بې كاره او نه څيز د الله ﷻ په نيز دا تولا دنيا ده.[2]

| وَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا |
|---|---|
| او وائى هغه كسان | چې انكار ئې اوكړو د رسالت نه |
| اوكافران وائى | |

[1] صحيح مسلم كتاب الجنة باب فناء الدنيا وبيان الحشر يوم قيامة :۲۸۵۸.
[2] صحيح مسلم كتاب الزهد باب الدنيا سجن المؤمن وجنة الكافر: ۲۹۵۷، مسندابي‌يعلى:۲۵۹۳، احمد:۳۲۹/۱.

لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْهِ اٰيَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ؕ قُلْ اِنَّ اللّٰهَ يُضِلُّ

ولې نازله نهٔ شوه | په دهٔ باندې | څه نښه | د طرفه د رب خپل نه | ورته اووايه | بيشکه الله | بې لارې کوي

چې ولې دهٔ ته د خپل رب د طرفنه زمونږ (غوښتلې) معجزه رانغله ؟ | ورته اووايه الله ﷻ دچا په

مَنْ يَّشَآءُ وَيَهْدِيْٓ اِلَيْهِ مَنْ اَنَابَ ۚ

هغه څوك | چې غواړي هغهٔ | او لار ښائي | په طرف خپل | هغه چا ته | چې رجوع اوکړي الله ته

حق کښې چې اوغواړي | نو ګمراه ئې کړي | اوهغه چاته سمه لار ښائي | چې رجوع ورته اوکړي

اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَتَطْمَىٕنُّ قُلُوْبُهُمْ بِذِكْرِ اللّٰهِ ؕ اَلَا

هغه کسان | چې ايمان ئې راوړو | اومطمين کيږي | زړونه د هغوئ | په ذکر د الله سره | واورئ

يعني څوک چې ايمان راوړي | ..................او د الله ﷻ په ذکر مطمئن شي | ..........واوره !

بِذِكْرِ اللّٰهِ تَطْمَىٕنُّ الْقُلُوْبُ ؕ اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا

چې په ذکر دالله سره | مطمئين کيږي | زړونه | هغه کسان | چې ايمان ئې راوړو | اوعمل ئې اوکړو

چې دالله ﷻ په ذکر سره د زړونو تسلي کيږي | ..........چا چې ايمان راوړو | اونيک

الصّٰلِحٰتِ طُوْبٰى لَهُمْ وَحُسْنُ مَاٰبٍ ۝

نيك | خوشحالي ده | هغوئ لره | او ښهٔ | انجام دې |

کارونه ئې اوکړل | هغوئ دپاره خوشحالي ده | اوښائسته انجام دې |

**قوله تعالى:: طُوْبٰى لَهُمْ وَحُسْنُ مَاٰبٍ ۝**

**جنتيان په نازونو نعمتونوکښې:** دمشرکانو يو اعتراض بيانيږي چه دوړاندينو نبيانو په شان دا زمونږ طلب شوې معجزه ولې نه ښائي؟ د دې پوره بحث څو ځايونوکښې تيرشوې چه د الله ﷻ قدرت خو شته خو بيا هم دوی د خپلې خبرې واوئنه ړيدل نو تباه او برباد به کړې شي. په حديث کښې دی چه د الله ﷻ د طرف په نبی کريم ﷺ باندې وحی راغله چه د دوی د غوښتنې مطابق زه د صفا غر د سرو زرو کوم. د عربو په زمکه کښې د خوږو اوبو دريابونه بهيوم، غريزه زمکه د زميندارئی په زمکه کښې بدلوم خو بيا هم که دوی ايمان رانه وړو نو دوی ته به هغه سزا ورکړم چه چاته به هم نه وی شوې. که غواړې نو چه د دوی د پاره داسې اوکړم اوکه غواړې نو چه د دوی د پاره د توبې او رحمت دروازه کولاؤ پريږدم. نو حضور ﷺ دوئم صورت خوښ کړو(۱) ږښتيا دی چه هدايت او ضلالت د الله ﷻ په لاس کښې دې هغه د څه معجزې د کتلو د پاره موقوف نه دې. د بې ايمانه د پاره نښې او ويره ټول بې فائدې دی. په چا چه د عذاب کلمه صادق راغله نو هغوی به د هرقسم نښو کتلو سره هم نه منی. او د عذابونو په کتو به ټول ايماندارجوړشی خوهغه صرف يوبې کاره څيز دی. فرمائی ﴿وَلَوْ اَنَّنَا نَزَّلْنَا﴾ الخ يعنی که مونږ په هغوی باندې فرښتې نازل کړې وې او مړو هغوی سره خبرې کړې وې او هر پټ څيز مو په هغوی باندې څرګند کړې وې نو بيا به هم دوی ته ايمان نصيب شوې نه وو او دا خبره ده که الله ﷻ اوغواړی نو هغه بله خبره ده خو په دوی کښې اکثر جاهل دی. څوك چه د الله ﷻ طرف ته تيښ شو او دهغه نه ئې امداد اوغوښتو اودهغه طرف ته عاجزی اوکړی نوهغوی لارموندونکی جوړيږی. دچا په زړونوکښې چه ايمان

---

(۱) احمد: ۱/۲۴۲ وهو حسن.

ګلك شو اود چا زړونه چه د الله ﷻ طرف ته تيتيږي د هغه په ذكر سره اطمينان حاصلوي. راضي او خوشحاليږي او په حقيقت كښې د الله ﷻ ذكر د زړونو د اطمينان څيز هم دې. د ايماندارانو او نيكانو د پاره خوشحالي او نيك فالي او د ستركو يخوالي دې. ددوى انجام ښه دې. دوى د مباركبادنى حقدار دى دوى د ښيګړې راغوندونكي دى. د دوى واپس كيدل بهتر دى. د دوى عمل نيك دې.

**د طوبى تفصل اودهغې متعلق حديثو نه**::روايت دې چه دطوبى نه مراد د حبش ملك دې او نوم دې د جنت اودې نه مرادجنت دې ابن عباس ﷺفرمائى چه كله جنت پيداكړې شو هغه وخت الله ﷻ همدا فرمائيلې وو وائى چه په جنت كښې د يوې ونې نوم هم طوبى دې او په ټول جنت كښې دهغې ښاخونه خواره شوى دى او په هريو كوركښې د هغې ښاخ موجود دې. الله ﷻ هغه په خپل لاس كرلې ده، د لوْ لوْ د دانې نه ئې پيدا كړې ده اود الله ﷻ په حكم لويه شوې او خوره شوې ده. هم د دې د جرړونه جنتي شاتو شرابو اوبو او پئيو نهرونه جارى كيږى. په يو مرفوع حديث كښې دى طوبى نومې د جنت يوه ونه ده د سلو كالو د لارې په مسافت. هم د دې د خوشو نه د جنتيانو جامې راوځى.(١) مسند احمدكښې دى چه يوسړى اوونيل يا رسول اللهﷺ چا چه تاسو اوليدلنى او په تاسو ئې ايمان راوړلو هغه ته دې مبارك وى. حضورﷺ اوفرمائيل چه اوهغه ته دې هم مبارك وى او هغه ته دې ډبل مبارك وى چا چه زه نه يم ليدلې او په ما ئې ايمان راوړې. يو سړى تپوس اوكړوطوبى څه څيز دې حضور ﷺ اوفرمائيل د جنت يوه ونه ده چه د سلو كالو لارې پورې خوره شوې ده. د جنتيانو جامې د دې د ښاخونو نه راوځى.(٢) په بخارى او مسلم شريف كښې دى حضورﷺ فرمائيل په جنت كښې يوه ونه ده چه يو سور به د سلوكالوپورې د هغې د سورى لاندې روان وى خو هغه به نه ختميږى. او په روايت كښې دى چه جنت كښې يوه ونه ده چې كه سور سړې په تكړه اوتيز آس دهغې لاندې سل كاله سفر اوكړى بيا به هم پاتې ته او نه رسى . په صحيح بخارى شريف كښې ﴿وَظِلٍّ مَّمْدُودٍ﴾ تفسيركښې هم دغه دى.(٣) حديث كښې دى اوياكاله يا سل كاله د دې نوم شجره الخلد دې. (٤)د سدرة المنتهى په ذكر كښې حضورﷺ فرمائيلى دى د دې د يوښاخ د سورى لاندې به ترسلوكالوپورې سور روان وى او سل سل سواره د دې د يو يو ښاخ لاندې اودريدې شى. په دې كښې د سرو زرو ملخان دى د دې ميوې د لويو لويو منګو برابر دى.(ترمذى)(٥) حضورﷺ فرمائى هر جنتى به طوبى له بوتلې شى او هغه ته به اختيار وركوني شى چه كوم ښاخ غواړې خوښ كړه. سپين سور زيړ تور چه ډير ښائسته نرم او ښكلې به وى. (٦) حضرت ابوهريره ﷺ فرمائى طوبى ته به حكم اوشى چه زما د بنديګانودپاره ښكلې څيزونه راوزوه. نو د هغې نه به اسونه او اوښان راوريږى ښائسته كړې شوې زين واكې اچولې او راښكلې شوې او مزيدار او بهترين لباس وغيره. ابن جرير ﷺ په دې ځاى كښې يو عجيبه اثر وارد كړې دې. وهب ﷺ وائى چه په جنت كښې يوه ونه ده چه د هغې نوم طوبى ده چه د هغې د سورى لاندې به يوسور سلوكالوپورې روان وى خو ختميږى به نه. ددې تازه والې د خورشوى چمن په شان دى.ددې پاڼې بهترين او مزيدارې دى د دې غنچې عنبرين دى د دې كاڼړى د ياقوتو دى د دې خاوره كافور دى د دې خټه مشك دى. د

(١) احمد:٧١/٣، مسند ابى يعلى:١٣٧٤، ابن حبان:٧٤١٣، الطبرى:١٤٩/١٣.
(٢) دَ دې روايت حكم هم دَ وړاندينى په شان دې خويه دې كښې (طوبى لمن رانى وامن بى ثم طوبى لمن من بى ولم يرنى) الفاظ په صحيح سندسره ثابت دى.
(٣) صحيح بخارى كتاب بدءالخلق باب ماجاء فى صفة الجنة وانها مخلوقة: ٣٢٥٢، ترمذى:٣٢٩٣.
(٤) احمد:٤٥٥/٢، مسندالطيالسى:٢٥٤٧، الدارمى:٢٨٣٩.
(٥) ترمذى كتاب صفة الجنة باب ماجاء فى صفة ثمار اهل الجنة:٢٥٤١هوحسن.
(٦) اسماعيل بن عياش، الترغيب الترهيب:٢٩٤/٤.

دې د جرړونه د شرابو شاتو پئيو نهرونه بهيږي. د دې لاندې به د جنتيانو مجلسونه وی دوی به ناست وی او هغوی له به فرښتې اوښې راولی د کومو زنځيرونه چه به د سرو زرو وی اود هغوی مخونه به د چراغ په شان پړقيږي. وينبته به ئې د رينبمو په شان نرم وی. په کومو چه به کجاوې وی چې تختې بهٔ ئې د ياقوتو وی په کومو چه به سره زر ټکوهلې شوی وی. او په هغې باندې به رينبمی ټالونه وی هغه اوښې به هغوی ته پيش کړې شي او ورته به اووائی دا سورلئی تاسو له راليږلې شوی دی اود الله ﷻ دربار ته تاسو رابللی شوی ئې. دوی به په هغې باندې سواره شي اوهغه به د مرغو د رفتار نه هم زياتې تيزې وی. جنتيان به يو بل سره يوځائ روان وی او بل سره به خبرې اترې کوی اود اوښو غوږ سره به غوږ هم نه يوځائ کيږي په پوره تابعدارئی کښې به روانې وی. په لارکښې چه کومې ونې راځی هغه به پخپله اخواکيږی ځوك به د خپل ملګری نه جدا کيږی هم نه دغه شان به رحمن او رحيم الله ﷻ ته اورسی. الله ﷻ به د خپل مخ نه پردې اخوا کړی دوی به د خپل رب مخ اووينی او وائی به ﴿اللهم انت السلام واليك السلام وحق لك الجلال والاكرام﴾ دهغوی په جواب کښې به الله ﷻ فرمائی ﴿انا السلام ومنى السلام﴾ په تاسو زما رحمت اوشو اوزما محبت دې هم هغه بنديګانوته مرحباوی چه بغيرد ليدلو مانه ويريدل او زما تابعدری کوله.

**جنت د تکليف ا ومشقت نه بلکه د ارام او مزو ځائې دې::** جنتيان به وائی اې الله ﷻ نه خو زمونږ نه ستاد عبادت حق ادا شو اونه ستا پوره قدر اوشو مونږ ته اجازت راکړه چه ستا په وړاندې سجده اوکړو. الله ﷻ به اوفرمائی نه دا د محنت ځاې دې او نه د عبادت. دا خو د نعمتونو او مزو نه ډك ځائ دې. د عبادتونو تکليف ختم شو د مزو اخستو وخت راغلو چه څه غوارئې ملاويږی به. تاسو نه چه کوم کس څه غواړی ورکوم به نو د کم نه کم سوال کونکې به وائی اې الله ﷻ تاچه دنيا کښې څه پيدا کړې وو چرته چه ستا بنديګانو چغې سورې وهلې.

زه غوارم چه د دنياد شروع نه تر اخره پورې په دنياکښې څومره څه وو ماته راکړې شی. الله ﷻ به اوفرمائی چه تاڅه هم اونه غوښتل د خپلې مرتبې نه دې ډيرکم څيز اوغوښتلو، ښه ده مونږ درکړه. زما په بخشش او ورکړه کښې څه کمې دې؟ بيا به فرمائی چه د کوموڅيزونو پورې زما د دې بنديګانو د خيالاتو رسيدل هم نه دی هغه ورکړه نو وربه کړې شي او ترڅې چه د هغوی خواهشونه به پوره کړې شی په هغه څيزونوکښې چه دلته هغوی ته ملاويږی تيز اسونه به وی. په هرو څلورو باندې به ياقوتی تختونه وی په يو يو تخت به د سرو زرو يوه ديره (حجره) وی په هره ديره کښې به جنتی فرش وی په کومو به چه د غټو غټو سترګوو الا دوه دوه حورې وی چه دوه دوه حلې به ئې اچولې وی په کوموکښې چه به د جنت ټول رنګونه او خوشبوئې وی. د دې خيمونه بهر به د هغوی مخونه داسې پړقيږی لکه چه هغه بهر ناستې وی. د هغوی د هډوکو مازغه به د بهر نه داسې ښکاری لکه چه په سرو ياقوتوکښې چه سپين تار پيللې شوی وی د پاسه به ښکاری. هره يوه به په بله باندې خپل غوره والې داسې پيژنی لکه څنګه چه غوره والې د نمر په کاڼی باندې، دغه شان به د جنتی په نظر کښې دواړه هم داسې وی. دې به هغوی له ځی او په مينه کښې به مشغول شي. هغه دواړه به دې په ليدو باندې وائی چه والله زمونږ په خيال کښې هم نه وه چه الله ﷻ به ستا په شان خاوندمونږ له راکوی. د الله ﷻ په حکم باندې به په داسې ترلی شوی صفونوکښې په سورلوباندې واپس کيږی او خپلو منزلو ته به رسی. ګوره خو سهی چه الله ﷻ وهاب ذات هغوی له کوم کوم قسم نعمتونه ايخودې دی؟ هلته په اوچتو درجو خلقو کښې په اوچتو اوچتو بالاخانوکښې کوم چه به دملغلرونه جوړوی دکومودروازې چه به د سرو زرو وی، د کوم تختونه چه به د ياقوتو وی د کومو فرشونه چه به نرم او د پيرو رينبمو وی د کومو منبرونه چه به د نور وی، د کومو پړقار چه به د نمر د پړقاری نه زيات وی. په اعلی عليين کښې به د هغوی محل

وی. د یاقوتو نه جوړې شوی پرقیدلې چه د هغې په پړقاری سره به د سترګو نه نور خی خو الله ﷻ به د هغوی سترګې داسې نه کوی. کوم محلونه چه د سرو یاقوتووی په هغې کښې به شین رینبمی فرش وی او چه کوم د زیړو یاقوتووی د هغې فرشونه به د سرو بخملو وی چه د زمردو او سرو زرو نه به پیللې شوی وی د دې تختونو پښې به د جواهرو وی په دې به چتونه د لؤلؤ وی د هغې پولونه به د مرجان وی. دهغوی د رسیدو نه اول به الله ﷻ خپلې تحفې هلته رسولې وی. سپین یاقوتی اسونه به غلمانو نیولې ولاړ وی د کومو په سامانونو چه به چاندی ورختلې وی. د هغې په تختو باندې د اعلی نرمو پیړو رینبموفرشونه خواره وی. دوی به په دې سورلو باندې سواره په مزه جنت ته خی. ګوری به چه د هغوی کورونوسره به په نورانی منبرونو باندې فرښتې د هغوی د استقبال او پخیرراغلی د پاره ناستې وی. هغوی به د دوی ډیر ښه استقبال کوی مبارکی به ورکوی او لاسونه به ورسره ملاووی. بیا به دوی په خپلوکورونو کښې داخلیږی اودالله ﷻ نعمتونه به هلته بیاموبی. خپلو محلونو سره به دوه تك شنه ډك باغونه اووینی چه په کوموکښې به دوه چینې په پوره رفتار سره روانې وی او هر قسم جوړ داړې میوې به وی او په خیموکښې به ښکلې او ساده پرده کونکې حورې وی. کله چه دوی دلته په رسیدو باندې په آرام او مزوکښې وی هغه وخت به الله ﷻ اوفرمانی زما خوږو بندیګانو تاسو زما وعدې رښتونې اوموندلې؟ آیا تاسو زما په ثوابونو باندې خوشحاله شوئی؟ هغوی به وائی چه اې الله! مونږ خو ډیر زیات خوشحاله شو او ډیر رضامندیو د زړه نه راضی یو او غوټې غوټې سپړدلې شوی یو. ته هم زمونږ نه خوشحاله شه. الله ﷻ به اوفرمانی که زما رضامندی نه وه نوما به تاسو دې خپلې مهمان خانې ته څنګه راداخلولې؟خپل دیدار به مې درته څنګه خودلو؟زما فرښتو به تاسوسره لاس ولې ملاوولو؟ تاسوخوشحاله اوسیږئی او په آرام سره اوسیږئی تاسو ته دې مبارك وی او تاسو مزې کوئی او آرام او چین کوئی زما دا انعامونه کمیدونکی او ختمیدونکی نه دی. دغه وخت کښې به هغوی وائی چه هم د الله ﷻ ذات د تعریف لائق دې چا چه زمونږ نه غم او درد لرې کړو او داسې مقام ته ئې راوزرسولو چرته چه مونږ ته نه څه تکلیف نه څه مشقت شته، دا هم د هغه فضل دې هغه ډیر ښنونکې او قدردان دې. داسیاق غریب دې او دا اثر عجیب دې اود دې بعضې شواهد هم موجود دی.

**د ادنی جنتی جنت:** بخاری او مسلم شریف کښې دی الله ﷻ به د هغه بنده ته کوم چه د ټولونه آخر کښې جنت ته داخل شی الله ﷻ به اوفرمائی چه غواړه، نوهغه به غواړی او کریم ذات به ئې ورکوی تردې چه د هغه سوال به پوره شی او د هغه په وړاندې به هیڅ خواهش پاتې نه شی نو بیا به الله ﷻ هغه ته په خپله یاداشت ورکړی چه دا اوغواړه دا اوغواړه دې به غواړی او ورته به ملاویږی بیا به الله ﷻ هغه ته اوفرمائی چه دا هرڅه ما تاته درکړه او دومره به نور هم لس څل ورکړی.([1]صحیح مسلم شریف په حدیث قدسی کښې دی چه اې زما بندیګانو ستاسو ټول وړاندې روستوانسانان او پیریان په یو میدان کښې اودریږئی اوماند دعاګانې کوئی اواوغواړئی زه به دهریو ټول سوالونه پوره کوم خوزماپه بادشاهۍ کښې به دومره هم کمې رانه شی څومره کمې چه دستنې په سمندرکښې ډوبولو سره د سمندر په اوبوکښې راځی الخ([2])خالدبن معدان ﷺفرمائی دجنت دیوې ونې نوم طوبی دې پدې کښې به تیونه وی دکومونه چه به دجنت ماشومان پئ څکی.کچه پریوتلی بچی دجنت په نهرونوکښې دی. د قیامت د قائمیدو پورې به بیادځلوینبتو کالو پورې شی اوخپل موریلار سره به په جنت کښې اوسیږی.

[1]) صحیح بخاری کتاب الاذان باب فضل السجود:۸۰۶، صحیح مسلم:۱۸۲، ابن حبان:۷۴۲۹، احمد:۲/۲۵۷.
[2]) صحیح مسلم کتاب البر باب تحریم الظلم:۲۵۷۷، ابن حبان:۶۱۹، احمد:۵/۱۶۰، الادب المفرد:۴۹۰.

كَذٰلِكَ اَرْسَلْنٰكَ

| دارنګې | اولیږلې مونږ ته

| مونږ ته په یو داسې امت کښې

فِيْٓ اُمَّةٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهَآ اُمَمٌ لِّتَتْلُوَاۡ

په یو داسې امت کښې | چې تیرشوی دی| مخکښې د هغې نه | ډیرقومونه|د پاره ددې چې ته واوروې

رالیږلې یې | چې د دې نه وړاندې هم ډیر امتونه تیر شوی دی | ...............د دې دپاره چې ته ورته هغه

عَلَيْهِمُ الَّذِيْٓ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ وَهُمْ يَكْفُرُوْنَ بِالرَّحْمٰنِ ؕ

هغوئ ته | هغه | چې وحی کړې دې مونږ | تاته | او حال دا چې دوئ| انکار کوی | دمهربانه الله نه

کتاب واوروئ |کوم چې مونږ تاته وحی کړې ده|خو حال دا دې چې هغوئ د رحمان نه انکاری کوی

قُلْ هُوَ رَبِّيْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ

دوئ ته اووایه | چې هم هغهٔ | رب زما دې | نشته دې لائق د عبادت| مګرهم هغهٔ دې

ورته اووایه چې هم هغهٔ زمارب دې | ...............بې د هغهٔ نه بل څوک لائق د عبادت نشته

عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَاِلَيْهِ مَتَابِ ۝

هم په هغهٔ باندې | بهروسه اوکړه ما| او هغهٔ ته | ورتلل دی زما |

په هغهٔ مې توکل دې| اوهغهٔ ته به واپس کیږم|

**قوله تعالى:: كَذٰلِكَ اَرْسَلْنٰكَ فِيْٓ اُمَّةٍ**

**د آقا ﷺ حوصله افزائی:-** ارشاد کیږی لکه څنګه چه ته مونږ دې امت ته لیږلې چه ته دوی ته د الله ﷻ کلام لوستلو سره واوروې دغه شان تانه وړاندې نور رسولان ږمونږو امتونو ته لیږلې وو. هغوی هم د الله ﷻ پیغام خپلو خپلو امتونوته رسولې وو خو هغوی دروغ ګنړلې،دغه شان نی ته هم دروغ اوګنړلې نو ته زړه مه تنګه وه او دې دروغ ګنړونکو له خپل انجام لیدل پکار دی. کوم چه د دوی نه وړاندې وو او د الله ﷻ عذاب تکړې تکړې کړل ستا دروغ ګنړل خو د هغوی د دروغو ګنړلو نه زمونږ په نیز ډیر ناخوښه دی اوس دا ګوره چه په دوی باندې څنګه عذاب راوریږی.همدغه فرمان په﴿تَاللّٰهِ لَقَدْ اَرْسَلْنَآ اِلٰٓى اُمَمٍ مِّنْ قَبْلِكَ فَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ اَعْمَالَهُمْ فَهُوَ وَلِيُّهُمُ الْيَوْمَ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝﴾ کښې او﴿وَلَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِكَ فَصَبَرُوْا عَلٰى مَا كُذِّبُوْا وَاُوْذُوْا حَتّٰٓى اَتٰىهُمْ نَصْرُنَا ۚ وَلَا مُبَدِّلَ لِكَلِمٰتِ اللّٰهِ ۚ وَلَقَدْ جَآءَكَ مِنْ نَّبَاِى الْمُرْسَلِيْنَ ۝﴾ کښې دې ګوره چه مونږ د خپلو څنګه امداد اوکړو؟ اوهغوی مو څنګه غالب کړل؟

**کافر د الله ﷻ رحمانیت نه انکار کوی::** خپل قوم ته ګوره چه درحمن انکارکوی هغوی د الله ﷻ دا وصف او نوم د سره منی نه. د حدیبیه د صلح په موقع هم په دې باندې کلك شو چه مونږ ﴿بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ﴾ نه لیکو مونږ نه پیژنو چه رحمن او رحیم څه دې. پوره حدیث په بخاری شریف کښې موجود دې [1]په قرآن کښې دی ﴿ قُلِ ادْعُوا اللّٰهَ اَوِ ادْعُوا الرَّحْمٰنَ ؕ﴾ ونیلو سره هغه رابلنی یا رحمن ونیلو سره هغه رابلنی هغه د ټولو بهترین نومونووالا دې. حضور ﷺ فرمائی د الله ﷻ په نیز عبدالله او عبدالرحمن ډیر ښکلی

[1] صحیح بخاری کتاب الشروط باب الشروط فی الجهاد والمصالحة مع اهل الحرب کتابة الشروط: ۲۷۳۱.

نومونه دي([1])كومو نه چه تاسو انكار كوئي زه خو دا منم هم هغه زما پروردگار دي زما يقين هم په هغه دي او هم د هغه طرف ته زما ټوله توجو او رجوع او د زړه تيتوالي دي هغه نه علاوه بل څوك د دي خبرو حقدار نه دي.

| | | |
|---|---|---|
| وَلَوْ | اَنَّ قُرْاٰنًا | |
| ا اوكه چرې | ا وي داسې قرآن | |
| اوكه يو قرآن داسې راغلي وي | | |
| سُيِّرَتْ بِهِ الْجِبَالُ اَوْقُطِّعَتْ بِهِ الْاَرْضُ اَوْكُلِّمَ | | |
| چې روانيدلې شوې\| په هغې سره\| غرونه\| ياشليدلې شوې\| په هغې سره \| زمكه \| يا خبرې كولې شوې | | |
| چې په هغې غرونه اړولې شي\| ياپرې زمكه ټكړې ټكړې كيديشي \| يا د دې په ذريعه مړو خبرې | | |
| بِهِ الْمَوْتٰى ؕ بَلْ لِّلّٰهِ الْاَمْرُ جَمِيْعًا ؕ اَفَلَمْ يَايْئَسِ الَّذِيْنَ | | |
| په هغې سره \| مړو \| بلكه \| خاص الله لره دي \| اختيار \| ټول \| ايا نو نااميده نه شو \| هغه كسان | | |
| كولې (بيا به هم دوئ ايمان نه راوړو) ابلكه ټول كارونه د الله په اختيار كښې دي\|اوس هم د مسلمانانو په دې | | |
| اٰمَنُوْٓا اَنْ لَّوْيَشَآءُ اللّٰهُ لَهَدَى النَّاسَ جَمِيْعًا ؕ | | |
| چې ايمان ئې راوړې دي\| چې\| كه چرې غوښتلې\| الله\| نوخامخابه ئې هدايت كړې وې \| خلقو \| ټولوته | | |
| خبره تسلي نه ده شوې \| كه الله ﷻ غوښتلې نو ټولو خلقو ته به ئې هدايت كړې وو | | |
| وَلَا يَزَالُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا تُصِيْبُهُمْ بِمَا | | |
| او هميشه به وي \| هغه كسان \| چې كافران شوي دي \| چې رسيږي به هغوئ ته \| په سبب دهغې عمل | | |
| اودا كافران به هميشه په داسې حالت كښې وي \| چې د خپلو ګناهونو په وجه به پرې | | |
| صَنَعُوْا قَارِعَةٌ اَوْتَحُلُّ قَرِيْبًا مِّنْ دَارِهِمْ حَتّٰى يَاْتِيَ | | |
| چې كړې وې هغوئ\| ټكونكې عذاب\| يابه نازليږي\| نزدې\|كورونود هغوئ ته\| ترهغې پورې\| چې راشي | | |
| څه نه څه آفت راځي \| يا به د دوئ په خواؤشا باندې راځي \| تر دې چې دالله ﷻ د وعدې پوره كيدو | | |
| وَعْدُ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُخْلِفُ الْمِيْعَادَ ۝ | | |
| وعده دالله \| بيشكه الله \| خلاف نه كوي \| د وعدې نه \| | | |
| وخت راشي \| بيشكه الله ﷻ دخپلې وعدې نه خلاف نه كوي \| | | |

**قوله تعالىٰ: وَلَوْاَنَّ قُرْاٰنًا سُيِّرَتْ بِهِ الْجِبَالُ**

**دقرآن كريم صفات جليله:-** الله ﷻ ددې پاك كتاب قرآن كريم تعريفونه كوي كه چرې دوړاندينو كتابونونه يوكتاب سره غردخپل ځاي نه اخواكيدوزمكه شليدونكې وه اومړي ژوندي كيدل نو دا قرآن چه د ټولوكتابونو نه ډير زيات لوئي دي د هغه ټولونونه زيات د دې خبرې اهل وو. په دې كښې هغه معجز بياني ده چه ټولو انسانانو او پيريانو په يو ځائ هم د دې په شان يو سورت هم جوړنه كړې شو نو دا مشركان د دې نه هم انكاري دي نو معامله هم د الله ﷻ طرف ته حواله كړه چه د صبا مالك دې ټول

---

[1]) صحيح مسلم كتاب الادب باب النهى عن التكنى بابى القاسم:۲۱۳۲، ابوداؤد:۴۹۴۹،ترمذى:۲۸۳۴، ابن ماجه:۳۷۲۸.

کارونه د هغه طرف ته گرځیدونکی دی هغه چه څه غواړی هغه کیږی چه څه نه غواړی هغه هیڅ چرې نه کیږی دهغه دلارې نه اخواکړې شوی د هغه رهنمائی اودهغه لار خودلی شوی گمراهی د چا په قبضه کښې نشته.

**د قران پاک اطلاق په مخکښې کتابونو کښې هم کیږی::** دایادساتنی چه دقرآن اطلاق په وړاندینو آسمانی کتابونو باندې هم کیږی داځکه چه هغه دټولونه مشتق دې.مسند کښې دی په حضرت داؤد ﷺ باندې قرآن دومره آسان کړې شوې وو چه د هغه په حکم به سورلی تیاریده نود هغې د تیاری نه به وړاندې هغه قرآن ختم کړې وو. د خپل لاس د گټې نه هغه بغیر څه نه خوړل[1] نو دلته د قرآن نه مراد زبور دې. آیا ایماندار دې نه مایوسه شوی نه دی چه ټول مخلوق ایمان ولې نه راوړی. د دې قرآن نه پس د کومې معجزې دنیاته ضرورت پاتې شو؟دې نه بهتر دې نه واضح او دې نه صفا او دې نه ډیر په زړونو کښې ځایْ کونکې بل کوم یو کلام دې؟ که دا په لویو لویو غرونوباندې نازل کړې شوې وې نو هغه به د الله ﷻ د ویرې نه ذره ذره شوې وو.

**دوړاندینو انبیاءکرامو معجزې د هغویْ سره ختمې شوې خو قران پاک ابدی دې::** حضور ﷺ فرمائی هرنبی ته داسې څیز ملاؤدې چه خلق په هغې باندې ایمان راوړی. زما داسې څیز دا د الله ﷻ وحی ده. نو زما دا امید دې چه د ټولو انبیاؤ نه به زه د ډیرو تابعدارانو والا شم.[2]مطلب دا چه د انبیاء کرام ﷺ معجزې هم هغوی سره لاړې او زما دا معجزه به تر آبادې دنیا پورې وی. نه به د دې عجائبات ختمیږی او نه به په ډیرو تلاوتونوسره دا زړیږی او نه به په دې د علماؤ زړه موړ شی. دا فصل دې دل لگی نه ده. کوم سرکش چه دا پریږدی الله ﷻ به هغه مات کړی. څوک چه دې نه علاوه بل څه کښې هدایت لټوی هغه به الله ﷻ گمراه کړی. ابوسعید خدری ﷺ فرمائی چه کافرانو حضورﷺته اوونیل که ته د دې ځایْ دا غرونه دې ځایْ نه واړوې او د دې ځایْ زمکې د کر قابلې شی او څنگه چه به حضرت سلیمان ﷺ د زمکې کنستل په هواباندې کول ته هم اوکړې لکه څنگه چه (حضرت عیسیﷺ)مړی ژوندی کول ته هم اوکړې نو په دې باندې دا آیت نازل شو.[3] قتاده ﷺ فرمائې مطلب دا دې چه که یو قرآن سره دا کارونه بنکاره کیدل نو ستا دې قرآن سره به هم کیدل. هر څه د الله ﷻ په اختیار کښې دی خو هغه داسې نه کوی چه تاسو ټول ازمیښت کړی چه پخپله خوښه ایمان راوړئی که نه. آیا د ایمان والا نه پیژنی؟ ﴿اَیۡ یئس﴾ په معنی دیعلم دی. او د نورو په قرات کښې ﴿یتبین﴾ په معنی د یعلم دی دې. ایماندار د هغویْ د هدایت نه مایوس شوی وو.که الله ﷻ اوغواړی نو ټول خلق به په هدایت باندې اودروی. دا کفار برابر گوری چه د هغوی په دروغ گنړلو سره د الله ﷻ عذاب برابر په هغوی باندې راوریږی یا هغوی سره خواوشاکښې راځی. نو بیا هم دوی نصیحت نه اخلی؟ لکه چه ارشاد دې ﴿وَلَقَدۡ اَهۡلَکۡنَا مَا حَوۡلَکُمۡ مِّنَ الۡقُرٰی﴾یعنی مونږ دخواوشاډیر کلی دهغوی دبدعملو په وجه تباه برباد کړل اوقسماقسم خپلې نښې موبنکاره کړې چه خلق د بدو نه منع شی لکه بل آیت کښې دی ﴿اَوَلَمۡ یَرَوۡا اَنَّا نَاۡتِی الۡاَرۡضَ نَنۡقُصُهَا مِنۡ اَطۡرَافِهَا﴾ آیا هغوی نه گوری چه مونږ زمکه راکموو، آیا اوس به هم خپله غلبه منونکی راځی.

**د تحل قریب نه څه مراد دی ؟::** د﴿تحل﴾ فاعل ﴿قارعة﴾ دې. همدغه ظاهر اود عبارت روانی ده خو د ابن عباس ﷺ نه روایت دې قارعه اورسیدل یعنی وړوکې غوندې اسلامی لښکر یا خو پخپله د هغوی ښار سره کوز شول یعنی محمدﷺ تر دې چه د الله ﷻ وعده راوړسی. دې نه مراد د مکې فتح ده. هم د

[1] احمد:۲/۳۱٤، صحیح بخاری کتاب احادیث الانبیاء باب قوله تعالی ﴿واتینا داؤد زبورا﴾:۳٤۱۷، ابن حبان:٦۲۲٥.
[2] صحیح بخاری کتاب التفسیر باب کیف نزل الوحی واول مانزل:٤۹۸۱، صحیح مسلم:۱٥۲.
[3] التهذیب التهذیب:۷/۲٥٥.

دوی نه مروی دی چه د قارعه نه مراد آسمانی عذاب دې او د خواوشا راکوزیدو نه مراد د حضور ﷺ د خپلو لښکروسره د هغوی حدونوته رسیدل دی اود هغوی سره جهاد کول دی. د دې تولو قول دې چه دلته د وعده ربانی نه مراد فتح مکه ده لیکن حسن بصری رحمه الله فرمائی دې نه مراد د قیامت ورځ ده. د الله ﷻ وعده د خپلو رسولانو نصرت او امداد دې هغه چرې اخوا کیدونکې نه ده. هغوی ته او د هغوی تابعدارو ته به خامخا اوچتوالې نصیب کیږی. لکه چه ارشاد دې ﴿فَلَا تَحْسَبَنَّ اللّٰهَ مُخْلِفَ وَعْدِهٖ رُسُلَهٗ﴾ دا غلط ګمان هیڅ کله مه کوه چه الله ﷻ به خپلو رسولانوسره وعده خلافی اوکړی. الله ﷻ غالب دې اوبدله اخستونکې دې.

| |
|---|
| وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ |
| او خامخا ټوقې شوی دی \| په رسولانو پورې |
| اوستا نه وړاندې هم په پیغمبرانو |
| مِّنْ قَبْلِكَ فَاَمْلَيْتُ لِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا ثُمَّ اَخَذْتُهُمْ |
| مخکښې ستانه \| نومهلت ورکړو ما \| هغه کسانوته \| چې انکار ئې اوکړو \| بیا \| ما اونیول هغوی |
| پورې ټوقې شوې وې \| خو ما (اول) کافرانو ته مهلت ورکړو \| بیا مې راونیول |
| فَكَيْفَ كَانَ عِقَابِ ۝ |
| نو څرنګې وو \| عذاب زما \| |
| نو (اوګوره) زما عذاب څومره سخت وو \| |

قوله تعالی:: فَاَمْلَيْتُ لِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا

**د انبیاؤ سره د ټوقوکولونه باوجود بیاهم مهلت ملاوشو:-** الله ﷻ خپل رسول ته تسلی ورکوی چه تاسو دخپل قوم دغلطې روې نه غم او فکر مه کوئې تاسونه وړاندې دپیغمبرانو هم دغه شان ټوقې مسخرې شوې وې ما دغه کافرانوته هم څه وخته پورې مهلت ورکړې وو. آخر مې بې شانه نیولې وو او تباه کړې مې وو. تاته معلومه ده چه په کوم حالت کښې زما عذاب په هغوی باندې راغلې وو؟ اود هغوی انجام څنګه شوې وو؟ لکه چه ارشاد دې ډیر کلی دی چه سره د ظلم په دنیاکښې ډیرو ورخو پورې مهلت اخستې ووخو آخر دخپلو بدعملو په وجه د عذابونو ښکار شو. بخاری اومسلم شریف کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی چه الله ﷻ ظالم ته مهلت ورکوی خو چه بیا ئې کله نیسی نو ظالم حیرانیږی. بیا هغوی د آیت ﴿وَكَذٰلِكَ اَخْذُ رَبِّكَ﴾ تلاوت اوکړو.

| |
|---|
| اَفَمَنْ هُوَ قَآئِمٌ عَلٰى كُلِّ نَفْسٍ |
| ایا نو هغه ذات \| چې هغهٔ \| نظر ساتونکې دی \| په هر نفس باندې |
| نو کوم الله ﷻ چې د هر سړی د ټولو عملونو نګران دې |
| بِمَا كَسَبَتْ ۚ وَجَعَلُوْا لِلّٰهِ شُرَكَآءَ ؕ قُلْ |
| په هغه عمل \| چې کوی ئې هغه نفس \| او جوړ کړی دی خلقو \| الله د پاره \| شریکان \| ورته اووایه |
| (دهغه بتانو په شان کیدیشی؟) \| او دوئ د(داسې) الله ﷻ شریکان جوړکړی دی \| ورته اووایه |

| سَمُّوهُمْ ؕ | أَمْ | تُنَبِّئُونَهُ | بِمَا | لَا يَعْلَمُ |
|---|---|---|---|---|
| چې واخلئ نومونه د هغوئ | يا | خبر وركوئ تاسو الله ته | په هغه څيزا | چې معلوم نهٔ دي هغهٔ ته |
| چې د هغوئ صفتونه خو لږ واورئ | | آيا تاسو الله ﷻ ته د داسي بتانو (د خدائي) خبر وركوئ | | چې |

| فِي الْأَرْضِ | أَمْ | بِظَاهِرٍ مِّنَ الْقَوْلِ ؕ | بَلْ زُيِّنَ |
|---|---|---|---|
| په زمكه كښې | يا | (خبر وركوئ) په سرسري خبرو (د خلي) | بلكه ښائسته ښكاره كړې شوي دى |
| په ټوله دنيا كښې د هغهٔ په علم كښې نشته | | كه نا هغوئ تش په خله (ستاسو معبودان) دي | بلكه كومو خلقو |

| لِلَّذِينَ | كَفَرُوا | مَكْرُهُمْ | وَصُدُّوا |
|---|---|---|---|
| د پاره د هغه خلقو | چې دحق منلو نه ئې انكار كړې دي | مكرونه خپل | او منع كړې شوي دى |
| چې كفر كړې دي | هغوى ته دهغوى حق نهٔ منل ښائسته كړې شوې دى | | او هغوئ د لارې |

| عَنِ السَّبِيلِ ؕ | وَمَنْ يُضْلِلِ اللَّهُ | فَمَا | لَهُ | مِنْ هَادٍ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| د نيغې لارې نه | او هغه څوك چې ګمراهه كړى هغهٔ لره الله | نو نشته | هغهٔ د پاره | څوك لار ښودونكې |
| (دهدايت) نه منع كړې شوې دى | او چا لره چې الله ﷻ ګمراه كړى | هغهٔ بل څوک په لاره كولې نشي | | |

**قوله تعالى:: أَفَمَنْ هُوَ قَائِمٌ عَلَىٰ كُلِّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ ۗ**

**عالم ماكان اوومايكون هم د الله ﷻ ذات دې:** الله ﷻ د هر انسان د اعمالو محافظ دې. د هرچا عملونه پېژنى په هر نفس باندې نګهبان دې. د هر و عمل كونكى د خير او شر د عمل نه خبردار دې. هيڅ څيز د هغه نه پټ نه دې. هيڅ د هغه په ناخبرنى كښې نه كيږى په هرحالت كښې هغه ته علم وى او په هر عمل باندې هغه موجود وى. د هرې پاڼرې د رالويدو هغه ته علم دې. د هر ساه لرونكى رزق د الله ﷻ په ذمه دې. د هر يو د ټكانې هغه ته علم دې. هره خبره دهغه په كتاب كښې ليكلې ده، ښكاره او پټه هره خبره هغه پېژنى. ته چه هرچرته نى الله ﷻ تاسره دې. ستا عملونه ګورى.د دې صفتونو والارب آيا ستاسو ددې دروغو معبودانوپه شان دې؟ چه نه اورى نه ګورى او نه د خپل ځان د پاره د څه څيز مالك اونه د بل چاد ګټې تاوان هغوى ته اختيار دې.دا جواب نى حذف كړوځكه چه د كلام دلالت موجود دې **دمشركانو دشرک هيڅ حقيقت نشته::** الله ﷻ هغه فرمان ﴿ وَجَعَلُوا لِلَّهِ شُرَكَاءَ ﴾ هغوى الله ﷻ سره نور شريكان كړل اودهغوى عبادتونه نى كول. ته خو لږ شان د هغوى نومونه واخله اود هغوى حالات خو بيان كړه دې د پاره چه دنيا ته پته اولګى چه هغه صرف بې حقيقته دى. آيا ته د زمكې د دې څيزونوخبر الله ﷻ ته وركوې كوم چه هغه نه پيژنى يعنى د كومو چه د سرنه وجود نشته. اوداځكه چه كه چرې وجودنى وې نو دالله ﷻ دعلم نه به بهرنه وو. ځكه چه د الله ﷻ نه دپټ نه پټ څيز هم پټ نه دې. دا صرف د ځان خبرې جوړونى؟ فضول ګپونه لګونى تاسو پخپله د ځان د هغوى نومونه جوړ كړى هم تاسو هغوى د ګټې تاوان مالكان ګرځولى او تاسو د هغوى عبادت شروع كړو. هم دغه ستاسو مشرانو كول. نه خو ستاسوپه لاس كښې څه ربانى دليل شته اونه څه بل څه دليل شته.داخوصرف وهم اوستاسو خواهشات دى.هدايت د الله ﷻ د طرف نه نازل شوې دې دكفارومكرهغوى ته په ښه رنګ كښې ښكارى هغوى په خپل كفر او شرك باندې فخر كوى. شپه ورځ هم په دغه كښې مشغول دى او هم دې طرف ته نور هم رابلى. لكه چه فرمانى ﴿ وَقَيَّضْنَا لَهُمْ قُرَنَاءَ فَزَيَّنُوا لَهُمْ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَحَقَّ عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ فِي أُمَمٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِمْ مِنَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ ۖ إِنَّهُمْ كَانُوا خَاسِرِينَ ۝ ﴾ د هغوى شيطانانو د هغوى بې طريقې

کارونه د هغوی په وړاندې ښانسته کړی دی. دوی د الله ﷻ د لارې نه د بدنی په لار باندې منع کړې شوی دی.
یو قراءت د دې (صُدُّوا)هم دې یعنی هغوی دغه ښه ګڼړلی او بیانور په دې کښې راګیرول شروع کړی او د رسولﷺ د لارې نه نور منع کوی. د الله ﷻ ګمراه کړې شوی څوك په لار کولې ؟ لکه چه فرمانی (وَمَن يُرِدِ اللَّهُ فِتْنَتَهُ فَلَن تَمْلِكَ لَهُ مِنَ اللَّهِ شَيْئًا) څوك چه الله ﷻ په فتنه کښې اچول غواړی نودهغې د پاره د الله ﷻ په نیز هیڅ هم اختیار نه لری او په آیت کښې دی چه ته خود هغوی د هدایت لالچی نی ولې الله ﷻ دغه ګمراهانوته لار نه خودل غواړی بیا څوك دی چه د هغوی امداد اوکړی؟

| |
|---|
| لَهُمْ عَذَابٌ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَلَعَذَابُ الْآخِرَةِ أَشَقُّ |
| مقرر دي هغوئ لره / عذاب / په ژوند ددنیا کښې / او خامخا عذاب د اخرت / زیات سخت دي |
| هغوئ د پاره د دنیا ژوند کښې عذاب دي / او د اخرت عذاب خو ډیر سخت دي |
| وَمَا لَهُمْ مِنَ اللَّهِ مِنْ وَاقٍ مَثَلُ الْجَنَّةِ الَّتِي وُعِدَ |
| او نشته / هغوئ لره / دالله نه / څوك بچ کونکې / مثال (صفت) / د جنت / هغه / چې وعده شوې ده د هغې |
| او هیڅوک دوئ د الله ﷻ (د عذاب) نه بچ کولې نشی / د کوم جنت چې پرهیزګارو خلقو |
| الْمُتَّقُونَ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ أُكُلُهَا دَائِمٌ |
| دمتقیانو سره / (دادې) چې بهیږی / لاندې د هغې نه / نهرونه / میوې د هغې / همیشه وی |
| سره وعده شوې ده / د هغې حالت دا دي / چې لاندې به ترې نه نهرونه بهیږی / د هغې میوې |
| وَظِلُّهَا تِلْكَ عُقْبَى الَّذِينَ اتَّقَوْا وَعُقْبَى الْكَافِرِينَ النَّارُ |
| او سیوری د هغې هم / دا انجام دي / د هغه کسانو / چې اوویریدل دالله نه / او انجام دکافرانو / اور دي |
| او دهغې سیوری به همیشه قائم وی / دغه د پرهیزګارو انجام دي / او د کافرانو انجام (د دوزخ) اور دي |

قوله تعالی:: وَلَعَذَابُ الْآخِرَةِ أَشَقُّ
**د دوزخ عذاب اود جنت نظارې:-** دکافرانو دسزا اونیك کارد بدلې باره کښې ذکر کولې شی. د کافرانو شرك اوکفر بیانولوسره دهغوی سزا بیان فرمانی چه هغوی به د مؤمنانو د لاسه قتل کیږی او غرقیږی، دې سره به دآخرت په سختو عذابونوکښې راګیروی چه د دې دنیا د سزا نه به په زرګاؤ درجو خرابه وی. مبتلاعنان ښځې او خاوندباره کښې رسول الله ﷺ فرمائیل چه د دنیا عذاب د آخرت د عذاب نه ډیر سپك دي. (x[1] دې ځائ عذاب فانی دې او د هغه ځائ باقی دې او د هغه اُور عذاب چه د دې ځائ د اُور نه اویا حصې زیات تیز دې او بیا هغه قید چه په تصور کښې هم نه شی راتلې. لکه چه ارشاد دې (فَيَوْمَئِذٍ لَا يُعَذِّبُ عَذَابَهُ أَحَدٌ) نه ددې په شان نن دچا عذاب دې اونه ددې په شان دچا قید دې. ارشاد دې (وَأَعْتَدْنَا لِمَنْ كَذَّبَ بِالسَّاعَةِ سَعِيرًا) د قیامت د منکرانود پاره مونږ د اُورعذاب تیارکړې دې. دلرې نه په کتلوباندې به چغې سورې شروع کړی. دهغه ځائ په تنګو اوتیارو کوروکښې کله هغوی اینختلې ورواچولې شی نو په چغو چغو به مرګ غواړی. یو مرګ څه له غواړنی ډیر مرګونه اوغواړنی

[1] صحیح مسلم کتاب اللعان: ۱۴۹۳.

اوس اوښنانې چه دا صحیح دی که د همیشه جنت صحیح دې د کوم وعده چه پرهیزګارانوسره ده چه دا دهغوی بدله ده اودهغوی د همیشه دپاره کور.بیا د نیکو انجام بیانوی چه هغوی سره د کومو جنتیانو وعده ده د هغې یو صفت خودا دې چه د دې نه څلورواړو طرفونوته نهرونه روان دی. چرته چه غواړی اوبه دې اوړی او اوبه هم هغه چه نه خرابیدونکې دی. بیا د پئیو نهرونه دی او پئی هم هغه چه دهغې خوند چرې هم نه خرابیدونکې دې. اود شرابونهرونه دی په کوموکښې چه صرف خوند او هم خوندې نه بې مزګی اونه خرابه نشه اود صفاشاتو نهرونه دی اود هرقسم میوې دی او ورسره د الله ﷻ رحمتونه او د مالك بښنې. د هغې میوې د همیشه د پاره دی د دې د خوراك ښناك ځیزونه هیڅ کله هم فنا کیدونکی نه دې.

**په مونځ کښې رسول ﷺ ته جنت او جهنم ښکاره شول:**:کله چه حضورﷺ کسوف مونځ کولونو صحابه کرامو رضی الله عنهم تپوس اوکړو چه حضورﷺ مونږ تاسو اولیدلئی چه لکه تاسوﷺ د څه ځیز د اخستو اراده کړې وه. بیا مونږ اولیدل چه تاسو روستونشی پښه بیا روستو اخوا کړه. حضورﷺ اوفرمائیل چه او ما جنت لیدلې وو او غوښتل مې چه یوه غنچه راوشوکوم که اخستې مې وې نو د دنیاد ټول عمر د پاره وه او تاسو به خوړله.([1]) ابویعلی کښې دی چه یو ورځ د ماسپښین په مانځه کښې مونږ حضورﷺ سره ووچه هغوی ناڅاپی وړاندې شو او مونږ هم وړاندې شو بیا مونږ اوکتل چه هغویﷺ له د څه ځیز د اخستو اراده کړې وه خو بیا هغویﷺ روستو راغله. د مانځه نه پس حضرت ابی بن کعب ﷺ معلومات اوکړوچه یارسول اللهﷺ نن خو مونږ تاسو په داسې کار کولو اوکتلئی چه د نن نه وړاندې مونږ نه وې لیدلې. حضور ﷺ اوفرمائیل چه او جنت ماته پیش کړې شو چه تازه پړقیدو، ما غوښتل چه دې نه یوه غنچه د انګورو راوشوکوم خو زما اود دې په مینځ کښې پرده اوکړې شوه. که ما دا راشوکولې وه نو ټولې دنیا به خوړله او بیا به هم یوه ذره نه کمیدله.([2]) د دې معنې یورِوایت مسلم کښې هم شته.([3])

**د جنت د میوؤ غټوالې:**:یو کلی وال د حضور ﷺ نه تپوس اوکړو په جنت کښې به انګور وی؟ هغویﷺ اوفرمائیل چه او. هغه ونیل چه څومره لوئې غنچې به وی ونی فرمائیل چه دومره لوئې که یو تور کارغه پوره میاشت الوزی نو بیا به هم د هغه غنچې نه تیرشوې نه وو. ([4])حدیث شریف کښې دی چه جنتی کله یوه میوه راوشوکوی هم هغه وخت به د هغې په ځای بله اولګی.

**جنت کښې به بول و براز نه وی:**: حضور ﷺ فرمائی چه جنتی به ښه خوری څکی خو نه به نی توکاړې راځی او نه پوزه نه ورې متیازې او نه لوئې د مشکو په شان خوشبو کونکې غوندې خوله به راشی او هم په دې سره به خوراك هضم شی لکه څنګه چه بې تکلفه ساه روانه وی دغه شان به تسبیح او تقدیس الهام کولې شی([5])(مسلم وغیره) یو اهل کتاب حضور ﷺ ته اوونیل چه تاسو فرمائې جنتیان به خوری او څکی؟ هغویﷺ اوفرمائیل چه او او، د هغه قسم د چا په لاس کښې چه د محمد(ﷺ) خان دې چه هر سړی له به د خوراك ښناك او جماع او شهوت دومره طاقت ورکولې شی څومره چه دلته سلو سړو له ورکړې شوی وی. هغه ونیل ښه ده چه څوك خوری څکی نو هغه ته به د متیازو هم ضرورت وی نو بیا

[1]) صحیح بخاری کتاب الکسوف باب صلاة الکسوف جماعة:۱۰۵۲،صحیح مسلم:۹۰۷ ابن حبان:۲۸۳۲، احمد:۱/۲۹۸.

[2]) احمد:۳/۳۵۲.

[3]) صحیح مسلم کتاب الصلاة الکسوف باب ماعرض علی النبیﷺفی صلاة الکسوف من امر الجنة والنار:۹۰۴.

[4]) احمد:۴/۱۸۴،طبرانی۸۲۰۸، مجمع الزوائد:۱۰/۴۳۱ ذنور تخریج ذ پاره اوګورئی ابن حبان:۷۴۱۶، مواردالظمان : ۲۶۲۷، المعجم الاوسط:۱/۱۲۷، الطبرانی:۳۱۲.

[5]) صحیح مسلم کتاب الجنة باب فی صفات الجنة واهلها وتسبیحهم فیها بکرة وعشیا:۲۸۳۵، ابن حبان: ۷۴۳۵، الدارمی:۲۸۲۷، احمد:۳/۳۴۹،مسندشامیین:۳/۱۱۴، مسندابی یعلی:۳/۳۱۸.

په جنت كښې ګندګي څنګه؟هغوىﷺ اوفرمائيل چه نه د خولې په ذريعه به دا ټول هضميږي او هغه خوله به د مشكود بوئي والا وي(مسند ونسائي)([1]) فرمائي چه د كومې مرغئي طرف ته جنتي د خوړلو په نظر سره اوګوري هغه به هم دغه وخت كښې د هغه په وړاندې سره كړې شوې راپريوځي. ([2])

**دجنت به هر څه هميشه وي:** بعضې روايتونوكښې دي چه هغه به بيا د الله ﷻ په حكم سره ژوندئي والوزي([3])په قرآن كښې دي چه هلته به ډيرې زياتې ميوې وي چه نه به تروې وي نه ماتې نه به ختميږي نه به كميږي په سورو كښې راتيتې څانګې او سوري به هميشه وي لكه چه ارشاد دې ايماندار او نيك كردار بهيدونكي نهرونو والا جنتونو له ورځي او هلته به د هغوى د پاره پاكې بيبيانې وي او ښكلې او اوږده سوري. حضورﷺ فرمائي چه دجنت د يوې ونې دسوري لاندې كه يو تيزرفتار سورسل كاله تيزې منډې وهي نو بيا به هم د هغې سورې نه ختميږي. په قرآن كښې دي
سوري خواره اولوئ. په عام توګه قرآن كريم كښې د جنت او دوزخ ذكر په يوځائ راځي دې د پاره چه د خلقو د جنت شوق وي او د دوزخ نه اوويريږي. دلته هم د جنت اودهغه ځاىٔ د يوځو نعمتونوذكر كولو سره اوفرمائيل چه دا دې انجام د پرهيزګارو او تقوى دارو خلقو اود كافرانو انجام دوزخ دې. لكه چه ارشاد دې چه دوزخيان او جنتيان برابر نه دي. جنتيان خو بامراد دي. د دمشق خطيب حضرت بلال بن سعدؒ فرمائي چه اې د الله ﷻ بنديګانوستاسو د يو عمل د قبوليت يا د يوې ګناه د معافئي پروانه تاسو كښې كوم يو ته ملاؤ ده؟ آيا تاسو دا ګمان كړې چه تاسو بې كاره پيداكړې شوى نې او تاسو د الله ﷻ په طاقت كښې نه راتلونكى نې. والله كه د الله ﷻ د تابعدارئي بدله په دنيا كښې ملاويدله نو تاسو ټول به په نيكو پورې انختي وئي آياتاسو په دنيا باندې عاشقان شوى وئي؟ آيا ستاسو د جنت رغبت نشته؟ د كوم ميوې او سورى چه د هميشه د پاره دى.

وَالَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَفْرَحُوْنَ بِمَآ
او هغه كسان | چې وركړې وۆ مونږ هغوىٔ ته | كتاب | هغوىٔ خوشحاليږي | په دې كتاب
اوهغه خلق كومو ته چې مونږ كتاب وركړې دې | هغوىٔ په تابانديې په نازليدونكي (كلام) خوشحاليږي

اُنْزِلَ اِلَيْكَ وَمِنَ الْاَحْزَابِ مَنْ يُّنْكِرُ بَعْضَهٗ ط
چې نازل كړې شوې دي | تاته | او څيني د ډلو نه | هغه څوك دى | چې نهٔ منى | څيني خبرې د هغې
اود هغوىٔ په مختلفو ډلو كښې داسې كسان هم شته | چې د دې د بعضې حصې نه انكار كوى

قُلْ اِنَّمَآ اُمِرْتُ اَنْ اَعْبُدَ اللّٰهَ وَلَآ اُشْرِكَ
ورته اووايه | چې بيشكه | حكم شوې دې ماته | چې زهٔ بندګي اوكړم د الله | او نهٔ كړم شريك (هيڅوك)
ورته اووايه چې ماته دا حكم شوې دې | چې د الله ﷻ عبادت اوكړم | او هيڅوك ورسره شريك

بِهٖ ط اِلَيْهِ اَدْعُوْا وَاِلَيْهِ مَاٰبِ ۝ وَكَذٰلِكَ
د هغهٔ سره | خاص هغهٔ ته | رابلل كوم زهٔ | او خاص هغهٔ ته | ورتلل دى زما | او دارنګې
نهٔ كړم | زه د هغهٔ طرفته بلنه كوم | او هم هغهٔ ته به واپس كيږم | او دغه شان

[1] احمد:۳۶۷/٤، السنن الكبرى:۱۱٤۷۸، الدارمى:۲۸۲۵، ابن حبان:۷٤۲٤،مواردالظمان: ۲٦۳۷، المعجم الاوسط:۲/۲۰۲، طبرانى:۱۷۸/۵، مجمع الزوائد:۱۰/٤۱٦،بدون (ليعطى قوة منة).
[2] البزار:۳۵۳۲، مجمع الزوائد:۱۰/٤۱٤، سنن سعيد بن منصور:۱۱۷۱.
[3] ابن ابى الدنيا، الترغيب الترهيب: ۵۵۰۹.

| اَنْزَلْنٰهُ | حُكْمًا | عَرَبِيًّا | وَلَئِنِ | اتَّبَعْتَ | اَهْوَآءَهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| نازل کړی دی مونږ دا قران | فرمان | عربی | او که چری | تا پیروی اوکړه | د خواهشاتو د هغوی |
| مونږ دا (کتاب) دیو واضحه حکم په طور نازل کړی دی او که ته د دی (سم) علم د راتلو نه پس هم | | | | | |

| بَعْدَ | مَا | جَآءَكَ | مِنَ الْعِلْمِ | مَالَكَ | مِنَ اللّٰهِ | مِنْ وَّلِيٍّ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| روستو | د هغې نه | چې راغلي دی تاته | د علم نه | نو نشته ستا د پاره | په مقابله د الله کښې | خوک دوست |
| دهغوئ په خواهشاتو پسې لاړې نو دالله ﷻ په مقابله کښې به دې نه خوک مددګار پیدا شی | | | | | | |

| وَّلَا وَاقٍ |
|---|
| او نه خوک بچ کونکې |
| او نه خوک بچ کونکې |

قوله تعالی:: وَالَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَفْرَحُوْنَ

**د قرآن دنازلیدلوسره خوشحالیدونکی خلق:-** کوموخلقوته چه د دې نه مخکښې کتاب ورکړې شوې دې او هغوی د هغې عمل کونکی دی نود قرآن په تاباندې نازلیدلوسره خوشحاله دی ځکه چه پخپله هم د هغوی په کتابونو کښې ددې زیرې اوددې صداقت موجوددې لکه چه په آیت﴿اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَتْلُوْنَهٗ حَقَّ تِلَاوَتِهٖ﴾کښې دی چه وړاندینی کتابونه په ښه شان سره لوستونکی پدې آخری کتاب باندې هم ایمان راوړی اوپه آیت کښې دی چه ته منې که نه منې د وړاندینو کتابونو والابه دې ښه تابعدار جوړیږی ځکه چه دهغوی په کتابونوکښې د حضورﷺ د پیغمبرئی خبردې او هغوی دا وعده پوره کولو سره په خوشحالئی سره منی. الله ﷻ دې نه پاك دې چه د هغه وعدې به غلطې راوځی اود هغه فرمان به صحیح ثابت نه وی نو هغوی خوشحالیدلو سره د الله ﷻ په وړاندې په سجده کښې پریوځی. او په دې ډلو کښې داسې هم دی چه د هغې بعضې خبرې نه منی. غرض دا چه بعضې اهل کتاب مسلمانان دی او بعضې نه دی نو اې نبیﷺ اعلان اوکړه چه ماته صرف د یو الله د عبادت حکم ملاؤشوې دې چه د نورو د شرکت نه بغیر صرف د هغه عبادت د هغه د توحید سره کوه او همدغه حکم زما نه وړاندې نبیانو او رسولانو ته ملاؤ شوې وو. هم د دغه لارې طرف ته اوهم دغه رب عبادت طرف ته زه تولې دنیا ته دعوت ورکوم هم دغه الله طرف ته تول رابلم او هم دغه الله ﷻ طرف ته زما واپس کیدل دی. څنګه چه مونږ تانه وړاندې انبیاء لیږلی په هغوی باندې مو خپل کتابونه نازل کړی نو هم دغه شان دا قرآن چه مضبوط او محکم دې. په عربی ژبه کښې چه ستا او ستا د قوم ژبه ده دا قرآن مونږ په تاباندې نازل کړو دا هم په تا باندې خاص احسان دې چه د دې واضح ظاهر مفصل او محکم کتاب سره تاله مونږ عزت درکړو. نه د دې نه وړاندې اونه د دې نه شاته باطل په دې کښې شاملیدلې شی. دا د الله ﷻ د طرف نه حکیم او حمید نازل شوې دې.

**دې ایت مبارک کښې دټولو علماء کراموته وعید دې::** اې نبیﷺ تاله ربانی علم اوآسمانی وحی راغلې ده که اوس هم تا د دوی د ماتحتئی خواهش اوکړو نو یاد ساته چه د الله ﷻ د عذابونونه تاخوك هم نه شی بچ کولې. نه به څوك ستا په حمایت کښې اودریږی. سنت نبویه او طریقه محمدیهﷺ د علم نه پس څوك چه دګمراهئی والا لار اختیار کړی نودهغه علماؤ دپاره په دې آیت کښې زبردست وعید دې.

| وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا | رُسُلًا | مِّنْ قَبْلِكَ | وَجَعَلْنَا |
|---|---|---|---|
| اوليږلي دي مونږ | ډير رسولان | مخكښې ستا نه | او وركړې وې مونږ |

اوستا نه وړاندې هم مونږ ډير پيغمبران ليږلي وو او هغوئ ته مو ښځې

| لَهُمْ | اَزْوَاجًا | وَّذُرِّيَّةً | وَمَا كَانَ | لِرَسُوْلٍ | اَنْ يَّاْتِيَ | بِاٰيَةٍ | اِلَّا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هغوئ ته | ښځې | او اولاد | او نه وو طاقت | د پاره د يو رسول | چې راوړې نې | وې ايو نښه | مگر |

او اولاد وركړې وو او هيڅ يو پيغمبر د الله ﷻ د حكم نه بغير يو ايت قدرې هم نه

| بِاِذْنِ اللّٰهِ | لِكُلِّ اَجَلٍ | كِتٰبٌ | يَمْحُوا اللّٰهُ | مَا | يَشَآءُ |
|---|---|---|---|---|---|
| په اجازت د الله سره | دپاره دهرې نيتې (دور) | يو كتاب دې | ختموي الله | هغه څه | چې غواړي هغه |

شي راوړې د هرې نيتې يو (خپل) كتاب وى الله ﷻ چې كوم حكم غواړي هغه ختموى

| وَيُثْبِتُ | وَعِنْدَهٗٓ | اُمُّ الْكِتٰبِ |
|---|---|---|
| او محكم كوى | او د هغهٔ سره دې | اصل د كتاب |

او چې كوم غواړي نو هغه باقي ساتي

**قوله تعالى:: وَمَا كَانَ لِرَسُوْلٍ اَنْ يَّاْتِيَ بِاٰيَةٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ**

**د معجزو صادركيدل د رسولانو په اختيار كښې نه دى:** ارشاد دې چه څنگه ته سره دانسان كيدو رسول الله ﷺ نې هم دغه شان تانه وړاندې ټول رسولان هم انسانان وو، خوراك به نې كولو بازار كښې به گرځيدل د ښځواو بچو والا.او په آيت كښې دى چه اې اشرف الرسل ته خلقو ته اووايه چه ﴿قُلْ اِنَّمَآ اَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُوْحٰٓى﴾ زه هم ستاسو په شان يو انسان يم زما طرف ته د الله ﷻ وحى كيږى. د بخارى او مسلم شريف په حديث كښې دى حضورﷺ فرمائى چه زه نفلى روژې نيسم هم اونه نې هم ساتم. د شپې تهجد هم كوم اواوده كيږم هم، غوښه هم خورم او ښځو سره هم ملاويږم، څوك چه زما د طريقې نه مخ واړوى هغه زما نه نه دې. په مسند احمد كښې د حضورﷺ فرمان دې چه څلور څيزونه د ټولو پيغمبرانو طريقه وه خوشبو لگول، نكاح كول مسواك كول او نكريزې. بيا فرمائى چه معجزې ښكاره كول د يو نبى كار هم نه دې دا د الله ﷻ عزوجل د قبضې څيز دې. هغه چه څه غواړى هغه كوى او چه څه اراده كوى د هغې حكم وركوى. د هر يو مقرر وخت اومعلومه موده په كتاب كښې ليكلې ده. دهر يوڅيز يوه اندازه مقرر ده. آيا تاته معلومه نه ده چه د زمكې او آسمان د ټولو څيزونو علم الله ﷻ سره دې هر څه په كتاب كښې ليكلې شوى موجود دى.داخو په الله ﷻ باندې ډيره آسانه ده.د هريو كتاب كوم چه د آسمان نه نازل شوې دې يو اجل دې او يوه موده مقرره ده. په دې كښې چه كوم غواړى منسوخ كوى كوم چه غواړى باقى پاتې كوى نوددې قرآن نه كوم چه په خپل رسول ﷺ باندې نازل كړې دې ټول وړاندينى كتابونه منسوخ كړې شو.

**د نيك بختى اوبدبختى كتاب نه بدليږى دې مطلبونه::** د الله ﷻ خوښه ده چه څه وران كړى او څه باقى پاتې كړى.د ټول كال كارونه نې مقرركړى خو د اختيار نه بهر نه دى چه څه نې اوغوښتل باقى اوساتل اوچه څه نې اوغوښتل بدل نې كړل سوا د بدبختنى نيك بختنى ژوند او مرگ نه چه د دې نه نې اوزگاريدل كړى او په دې كښې بدلون نشته. منصور رحمه الله فرمائى چه ما د حضرت مجاهد رحمه الله نه تپوس اوكړو چه په مونږ كښې د يو كس دا دعا څنگه ده؟ چه يا الله كه زما نوم په نيكانو كښې دې نو

باقي نې اوساته او که په بدانو کښې دې نو هغه وران کړه او په نیکانو کښې کړه. هغوی اوفرمائیل چه دا خو ډیره ښه دعا ده کال پس بیا ملاقات اوشو یا څه زیاته موده شوې وه نو ما بیا د هغه نه د دې خبرې باره کښې معلومات اوکړو نو هغوی ﴿إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةٍ مُّبَارَكَةٍ﴾ نه د دوو آیاتونو تلاوت اوکړو او وئې فرمائیل چه په لیلة القدر کښې د ټول کال تکلیفونه اوروزنې مقرر کیږې بیا چه کوم الله ﷻ اوغواړې نو وړاندې روستو کوی او د نیك بختنې او بدبختنې کتاب نه بدلیږې. حضرت شقیق بن سلمه ﷫ به اکثر دا دعا کوله. اې الله که تا مونږ په بدبختانو کښې لیکلی یونو هغه وران کړه او زمونږ شمیر په نیکانو کښې اولیکه او که تا مونږ په نیکانوخلقو کښې لیکلی یو نو هغه باقی اوساته. چه څه غواړې ورانوی او چه څه غواړې باقی پاتې کوی اصل کتاب خو هم تاسره دې. حضرت عمر بن خطاب﷜ به د بیت الله شریف طواف کولو سره ژړل او دا دعا به ئې کوله یا الله که تا په ماباندې بدی او گناه لیکلې وی نو هغه وران کړه ته چه څه غواړې نووړانوې او چه څه غواړې نو باقی ساتې. ام الکتاب خو هم تاسره دې. ته دا نیك بخت اوبه دې رحمت اوکړې.حضرت ابن مسعود﷜ به هم دادعا کوله. حضرت کعب ﷫ امیرالمؤمنین حضرت عمر﷜ ته اووئیل چه که یو آیت په کتاب الله کښې نه وو نو ما به د قیامته پورې چه کوم کارونه کیدونکی دی ټول به مې تاته خودلې وو. تپوس ئې اوکړو چه هغه کوم آیاتونه دی هغوی هم د دې آیاتونو تلاوت اوکړو. د دې ټولو اقوالو مطلب دا دې د تقدیر اړولو راړولو اختیار د الله ﷻ په لاس کښې دې. دمسنداحمد یو حدیث شریف کښې دی دبعضې گناهونو په وجه انسان د خپل رزق نه محروم کولې شی او تقدیر بغیرد دعا نه بل هیڅ څیز نه شی بدلولې او د عمر زیاتوالې بغیرد نیکونه هیڅ څیز نه دې. په نسائی او ابن ماجه کښې هم دا حدیث شریف دې او په صحیح حدیث کښې چه صله رحمی عمر زیاتوی. او په یوبل حدیث شریف کښې دی چه د دعا او قضا یوځائ کیدل د آسمان په مینځ کښې وی. ابن عباس ﷜ فرمائی چه الله ﷻ سره لوح محفوظ دې چه د پنځو سوو کالو د لارې څیز دې. د سپینو مرغلرو دې د یاقوتو د دوو پټو په مینځ کښې ۶۳ ځل الله ﷻ په دې توجه کوی چه څه غواړې نو ورانوی او چه څه غواړې نو باقی پریږدی.الخ کلبی ﷫ فرمائی رزق زیاتول کمول عمر زیاتول کمول د دې نه مراد دې. هغوی نه تپوس اوکړې شو چه تاته دا خبره چا بیان کړې؟وئې فرمائیل ابوصالح ﷫ هغه ته حضرت جابر بن عبدالله بن رباب﷜ او هغه ته نبی کریم ﷺ.بیا د هغه نه د دې آیت باره کښې سوال اوکړې شونو جواب ورکړې شو چه ټولې خبرې لیکلې کیږې د زیارت په ورځ چه کومې خبرې د جزا او سزا نه خالی وی راویستې شی لکه چه ستا دا وینا چه ما اوخوړل ما اوڅکل زه لاړم وغیره چه رښتیا خبرې دی اود ثواب او عذاب څیزونه نه دی او باقی کوم چه د ثواب او عذاب څیزونه دی هغه باقی ساتلې شی.

**الله ﷻ چې اوغواړې نو کتاب کښې تغیروتبدیل کوی:** ① دحضرت ابن عباس ﷜ وینا ده چه دوه کتابونه دی په یو کښې کمې زیاتې کیږې او الله ﷻ سره دی او اصل کتاب هم هغه دې. فرمائی دې نه مراد هغه سړې دې چه د یو زمانې پورې خو د الله ﷻ اطاعت کښې لگیاوی بیا په گناه اخته شی او هم په دې حالت کښې مړشی نو د هغه نیکئی ختمولې شی. اود چا د پاره چه باقی پاتې کیږې دا هغه سړې دې چه تردغه وخته پورې په نافرمانو کښې اخته ووخو د الله ﷻ د طرف نه د هغه د پاره فرمانبرداری د اول نه مقرر شوې وی نو په آخری وخت کښې هغه نیکوطرف ته روان شی اود الله ﷻ په اطاعت باندې مړشی نو دادی د چا د پاره چه ثابت پاتې کیږې ② سعید بن جبیر﷜ فرمائی مطلب دا دې چه څوك غواړې نو وئې بښی اوچه څوك نه غواړې نونه ئې بښی.③ دحضرت ابن عباس ﷜ قول دې چه څه غواړې نو منسوخ ئې کړی او چه څه غواړې نو نه ئې بدلوی. ناسخ هم هغه سره دې او اول بدلول هم.④ د قتاده ﷫ په قول دا آیت په مثال د آیت ﴿مَا نَنسَخْ﴾ دې یعنی چه څه غواړې نو منسوخ ئې کړی او چه

څه غواړي نو باقي او جاري اوساتي.⑤ مجاهد رحمه الله فرمائي چه کله د دې نه اولنۍ آیت نازل شو چه یو رسول هم د الله ﷻ د فرمان نه بغیر څه معجزه نه شي خودلې نو قریشو ونیل چه بیا خو محمد ﷺ بالکل بې بس دې د کار نه اوزګارشوې دې. نو د هغوی د ویرولو دپاره دا آیت نازل شو چه مونږ څه غواړو نو پیدا کولې شو. په هر رمضان کښې نوې پیداوښت کیږي. بیا چه څه الله ﷻ غواړي نو ورانوي او چه څه غواړي نو ثابت ئې ساتي. رزق هم تکلیف هم او تقسیم هم ورکوي. ⑥ حسن بصري رحمه الله فرمائي چه د چا اجل راشي روان شي او چه د چا نه وي نو پاتې شي ترهغه وخته پورې چه خپلې ورځې پوره کړي. ابن جریر رحمه الله هم دا قول خوښوي حلال حرام هغه سره دی، د کتاب خلاصه او جړه هم دهغه په لاس کښې ده. کتاب پخپله رب العالمین سره دې. ابن عباس رضی الله عنه د حضرت کعب رحمه الله نه د ام الکتاب باره کښې تپوس اوکړو نو هغه جواب ورکړو الله ﷻ مخلوق اود هغوی اعمال اوپیژندل بیائې اوونیل چه د کتاب په شکل کښې دی شي نو شو.⑦ ابن عباس رضی الله عنه فرمائي ام کتاب نه مراد ذکر دې

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَإِمَّا | نُرِيَنَّكَ | بَعْضَ | الَّذِي |
| او که چرې | مونږ اوښایو تا ته | | اخیني(عذاب) هغه |
| او مونږ چې دوئ سره (دعذاب) | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| نَعِدُهُمْ | أَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ | فَإِنَّمَا | عَلَيْكَ | الْبَلَٰغُ |
| چې وعد ئې کوؤ مونږ د هغوئ سره | یا وفات کړو مونږ تالره | نو بیشکه | په تاباندې | پیغام رسول دی |
| کومه وعده کوو که د هغې څه حصه تاته اوښایو | یا تا وفات کړو | نو ستاکارخو بس حکم رسول دی | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَعَلَيْنَا | الْحِسَابُ | أَوَلَمْ يَرَوْا | أَنَّا | نَأْتِي | الْأَرْضَ |
| او په مونږ باندې | حساب دی | ایا نه ګوري (داخلق) | چې بیشکه مونږ | راځو | زمکې ته |
| اوزمونږ په ذمه حساب اخستل دی | ایادوئ نه ګوري چې مونږ زمکې ته راړواندې کیږو | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| نَنقُصُهَا | مِنْ أَطْرَافِهَا | وَاللَّهُ | يَحْكُمُ | لَا مُعَقِّبَ |
| چې کموؤ دا | دغاړې ددې نه | او الله | حکومت کوي | نشته دې هیڅوک وریسې روستو نظر اچونکې |
| اودهر طرف نه ئې (په دوئ) رالندوؤ | او فیصلې صرف الله ﷻ کوي | هیڅوک د هغهٔ فیصله | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| لِحُكْمِهِ | وَهُوَ | سَرِيعُ | الْحِسَابِ |
| په فیصله د هغه باندې | او هغهٔ | ډېر زر اخستونکې دې | د حساب |
| بندولې نشي او هغهٔ ډېر زر حساب اخستونکې دې | | | |

قوله تعالی:: فَإِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلَٰغُ وَعَلَيْنَا الْحِسَابُ۞

د نبي په ذمه تبلیغ او حساب د الله ﷻ په ذمه: ستا په دښمنانو باندې چه زمونږ کوم عذاب راتلونکې دې نوکه هغه مونږ ستاپه ژوند کښې راولویاستاد مرګ نه پس نو ستاپه څه؟ستا کارخو صرف زمونږ پیغام رسول دی او هغه تا کړې دې. دهغې حساب اوبدله زمونږ په لاس کښې ده ته صرف هغوی ته نصیحت کوه ته په هغوی باندې څه مشر او ساتندونکې نه ئې څوک چه مخ اړوي او کفر کوي هغه به الله ﷻ پخپله په لویو سزاګانو کښې داخلوي. د هغوی واپس کیدل خو هم زمونږ طرف ته دي اود هغوی حساب هم زمونږ په ذمه دې هغوی نه ګوري چه مونږ زمکه ستا په قبضه کښې درکړو؟ آیا هغوی نه ګوري چه آباد او چت شان والا محلونونه کنډرې او بیابان جوړ دی. آیا هغوی نه ګوري چه مسلمانا

کافران دباووی؟ ایا هغوی نه ګوری چه برکتونه اوچتیږی خرابئ راځی خلق مره کیږی زمکه ورانیږی.
که پخپله دا زمکه هم تنګیدله نوانسان له به یو ځپر اچول هم ګران شوی وو. مقصد د انسانانو او ونو
کمې کیدل دی. دې نه مراد د زمکې تنګی نه ده بلکه د خلقو مرګ دې د علماؤ فقهاؤ او خو خلقو
مرګ هم د زمکې بربادی ده. عرب شاعر وائی:

الارض تحیا اذا ما عاش علمها ... متی یمت عالم منها یمت طرف
کالارض تحیا اذا ما الغث حل بها ... وان ابی عاد فی اکنافها التلف

یعنی چرته چه عالم دین دې د هغه ځائ زمکه په هغه آباده ده د هغه مرګ دهغه زمکې خرابی او
بربادي دې.لکه څنګه چه باران په کومه زمکه باندې اودیریږی نوراشنه شی اونه وریږی نو شاړه او
بنجرشی نو په آیت کښې مراد داسلام په شرك باندې غالب راتلل دی د یو نه پس بل کلې تابع کول دی
لکه چه فرمائی ﴿وَلَقَدْ أَهْلَكْنَا مَا حَوْلَكُم مِّنَ الْقُرَىٰ وَصَرَّفْنَا الْآيَاتِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ﴾ همدغه قول د ابن جریر رحمه الله خوښ
کړی شوی دی.

| وَقَدْ مَكَرَ الَّذِينَ | مِن قَبْلِهِمْ | فَلِلَّهِ | الْمَكْرُ |
|---|---|---|---|
| اومکر(فریب)کړی دی هغه کسانوچې مخکښې د دوی نه وو | لیکن دالله په اختیار کښې دې | اصلی فیصله کونکې تدبیر | |
| حال دا چې سازشونه کامیابول خو ټول د الله ﷻ په اختیار کښې دی ...... | | | |
| جَمِيعًا ط يَعْلَمُ | مَا تَكْسِبُ | كُلُّ نَفْسٍ ط وَسَيَعْلَمُ | الْكُفَّارُ |
| ټول \| معلوم دی هغۀ ته | هغه څه چې ګټی نې | هر نفس \| او زر به پوهه شی | د حق نه انکاریان خلق |
| هر کس چې څه کوی هغه ټول الله ته معلوم دی\| او کافرانو ته به زر معلومه شی ...... | | | |
| لِمَنْ | عُقْبَى | الدَّارِ | |
| چې چا د پاره به وی \| ښۀ انجام \| د آخرت \| | | | |
| چې د آخرت انجام د چا ښۀ دې \| | | | |

**قوله تعالی: وَقَدْ مَكَرَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ فَلِلَّهِ الْمَكْرُ جَمِيعًا ط**

**دکافرانوتدبیرونه ناکام دالله ﷻ اراده کامیاب**- وړاندینو کافرانوهم دخپل نبیانوسره مکرکړې وو هغوی
نې ویستل غوښتل نو الله ﷻ د هغوی د مکر بدله واخسته او انجام هم د پرهیزګارانوخلقو ښه شو. دې
نه وړاندې ستاسو د زمانې د کافرانو بدعملئ بیان شوی دی چه هغوی ستاسو د قتل کولو قید کولو
یا دملك نه د ویستلو مشوره کوله هغوی په مکر کښې وو او الله ﷻ هغوی ته په کتوکښې وو نو د الله
ﷻ نه ښه او پټ تدبیر د چا کیدلې شی د هغوی په مکر باندې مونږ هم دغه اوکړل او دوی بې خبره
پاتې شو ګوره چه د هغوی د مکر انجام څه شو؟ هم دغه چه مونږ هغوی غرق کړل اود هغوی ټول قوم
مو برباد کړو د هغوی د ظلم ګواهی ورکونکی د هغوی غیر آباد کنډرې هم موجود دی. د هر یو د هر
عمل نه الله ﷻ خبر دې پټ عمل او په زړه کښې راغلې عمل په هغه باندې ښکاره دې. هر عمل
کونکی ته به دهغه دعمل بدله ورکوی د﴿الکفار﴾قراءت﴿الکافر﴾ هم دې د دوی کافرانوته به اوس معلومه
شی چه د چا انجام ښه پاتې کیږی د هغوی یادمسلمانانو؟﴿الحمدلله﴾ الله ﷻ همیشه د حق والا غالب
کړی دی د انجام په اعتبارسره به هم دوی ښه وی اودنیا او آخرت به هم د دوی ښه وی.

| | | | |
|---|---|---|---|
| كَفَرُوْا | الَّذِيْنَ | وَيَقُوْلُ | |
| چې د حق نه ئې انکار اوکړو | هغه کسان | او وائي | |

او کافران وائي...........

| بَيْنِىْ | شَهِيْدًا | بِاللّٰهِ | كَفٰى | قُلْ | مُرْسَلًا | لَسْتَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په منځ زما | په حيثيت د گواه | الله | کافي دې | ورته اووايه | راليږلې شوې پيغمبر | چې نه ئې ته |

چې ته رسول نه يې ..........ورته اووايه چې الله ﷻ زما او ستاسو په مينځ کښې کافي گواه

| الْكِتٰبِ | عِلْمُ | عِنْدَهٗ | وَمَنْ | وَبَيْنَكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| د کتاب | علم | چې د هغه سره دې | او بيا د هغه چاگواهي کافي ده | او په منځ ستاسو کښې |

دې ..........اوهغه ځوک (گواه دې) چاسره چې د (اسماني كتاب) علم دې

**قوله تعالى:: وَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَسْتَ مُرْسَلًا**

**د رسالت او نبوت منکر:-** کافران تادروغژن گنړي درسالت منکر دی ته غم مه کوه اوورته وايه چه د الله ﷻ گواهي کافي ده.زما دنبوت هغه پخپله گواه دې زما په تبليغ باندې او ستاسو په دروغ گنړلو باندې ذغه گواه دې زما صداقت او ستاسو تهمت ته هغه گوري.

**وَمَنْ عِنْدَهٗ عِلْمُ الْكِتٰبِ نه مراد ځوک دي؟:**:علم کتاب چه چاسره دې دې نه مراد عبدالله بن سلام ﷺ دې او دا قول د مجاهد رحمه الله دې خو ډير غريب قول دې خکه چه دا آيت په مکه کښې نازل شوې او حضرت عبدالله بن سلام ﷺ خو د مديني د هجرت نه پس مسلمان شوې دې. دې نه ډير ښکاره د حضرت ابن عباس ﷺ قول دې چه د يهودو او نصاراؤ حق ويونکي عالمان مراد دی په دوی کښې حضرت عبدالله بن سلام ﷺ هم دې او حضرت سلمان ﷺ او تميم داري ﷺ وغيره. د مجاهد رحمه الله نه په يو روايت کښې نقل دی چه دې نه مراد هم پخپله الله ﷻ دې.حضرت سعيد رحمه الله دې نه انکاری دې چه دې نه مراد عبدالله بن سلام ﷺ واخستلې شي خکه چه دا آيت مکي دې او آيت به ئې من عنده لوستلو.هم دغه قراءت د حضرت حسن بصري رحمه الله او حضرت مجاهد رحمه الله نه هم روايت دې. په يو مرفوع حديث کښې همدغه قراءت نقل دې ([1]).خو هغه حديث ثابت نه دې. صحيح خبره دا ده چه دا اسم جنس دې هر هغه عالم چه د وړاندينو کتابونو عالم دې په دې کښې داخل دې. د هغوی په کتابونوکښې د حضور ﷺ صفت اودهغوی ﷺ زيرې موجود وو. دهغوی انبياؤ د حضور ﷺ دخبرې پيشن گوئي کړې وه لکه چه د الله ﷻ فرمان دې( وَرَحْمَتِيْ وَسِعَتْ كُلَّ شَيْءٍ )يعنی زما رحمتونو ټول څيزونه راگيرکړی دی زه به هغه هغه خلقو په نوم اوليکم چه متقيان دی او د زکوة اداکونکي دی او زمونږ په آياتونو باندې ايمان لرونکي دی. د رسول نبی امي ﷺ تابعداری کونکي دی د چا ذکر چه په خپل کتاب تورات زبور انجيل کښې موجود ويني. او په آيت کښې دی چه آيا داخبره د دوی دپاره کافي نه ده چه د ده د حق کيدو علم د بنی اسرائيلو علماؤ ته هم شته.

**د عبدالله بن سلام د ايمان قصه:**:په يو ډير غريب حديث کښې دی چه عبدالله بن سلام ﷺ ديهوديانو علماوته اووئيل زما اراده ده چه د خپل پلار ابراهيم او اسماعيل ﷺ جمات ته لاړشم اواختراو نمانځمه. مکې ته راغلو حضور ﷺ هم دلته کښې وو دا خلق چه کله د حق نه واپس شونو حضور ﷺ سره نی

[1]) الطبرى: ۱۷۶/۱۳، مسند ابي يعلى: ۵۵۷۴، مجمع الزوائد۱۵۵/۷، سنن سعيد بن منصور: ۱۱۷۷

ملاقات اوشو دغه وخت هغوی ﷺ په یوجمات کښې تشریف ایخودې وو او خلق هم ورسره وو. دې هم د خپلو ملګرو سره اودریدو. حضور ﷺ د هغوی طرف ته اوکتل او وئی فرمائیل هم ته عبدالله بن سلام نی هغوی اوونیل او. وئی فرمائیل نزدې راشه چه نزدې شو نو حضور ﷺ اوفرمائیل چه آیا ته زما ذکر په تورات کښې نه ګورې؟ هغه اوونیل چه ته د الله ﷻ اوصاف زما په وړاندې بیان کړه هغه وخت حضرت جبرائیل ﷺ راغلو اود هغوی په وړاندې اودریدو او حکم ئی ورکړو چه وایه ﴿قُلۡ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ ۚ﴾ حضور ﷺ پوره سورت اولوستلو نو ابن سلام هم هغه وخت کلمه اوونیله اومسلمان شو. مدینې ته واپس راغلو خو خپل اسلام ئی پټ کړو کله چه حضور ﷺ هجرت اوکړو او مدینې ته راغلو نو هغه وخت دې د کهجورې یوې ونې ته ختلې وو کهجورې راکوزولې. کله چه هغه ته خبر اوشو نو هم هغه وخت ئی د ونې نه راټوپ کړو. مور ئی ونیل که چرې حضرت موسی ﷺ هم راغلې وې نو تا به د ونې نه نه وو راټوپ کړې څه خبره ده؟ جواب ئی اوکړو مورجانې د حضرت موسی ﷺ د نبوت نه هم ډیره خوشحالی ماته د ختم المرسلین دلته په تشریف راوړلو سره شوې ده. [1] ﴿الحمدلله﴾ سورة رعد تفسیر ختم شو

| رکوع ګاني | سورة ابراهیم مکیة وهی اثنان وخمسون اٰیة وسبع رکوعات | اٰیتونه |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ | |
| ⑦ | شروع کوم په نوم د الله چې ډیر مهربان او زیات رحم کونکې دې | ⑤② |

الٓرٰ كِتٰبٌ اَنۡزَلۡنٰهُ اِلَیۡكَ لِتُخۡرِجَ النَّاسَ

ا ل ر | دا یو کتاب دې | چې نازل کړو مونږ دا | تاته | دپاره ددې چې ته راوباسې | دا خلق

الف لام را | دا کتاب مونږ ستا طرفته دې دپاره نازل کړې دې | چې ته خلق د هغوی د رب په حکم سره

مِنَ الظُّلُمٰتِ اِلَی النُّوۡرِ ۙ۬ بِاِذۡنِ رَبِّهِمۡ اِلٰی صِرَاطِ الۡعَزِیۡزِ الۡحَمِیۡدِ ۙ ①

د تیارو نه | رڼا ته | په اجازت | د رب د هغوئ سره | لارې د غالب ستائیلې شوی الله ته

(د کفر د تیارو نه) اوباسې او (د ایمان) رڼا کښې ئې داخل کړې| د هغه الله لارې ته چې غالب ستائیلې شوې دې

اللّٰهِ الَّذِیۡ لَهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الۡاَرۡضِ ؕ

الله هغه | چې هغهٔ د پاره دی| هغه څه | چې په اسمانونو کښې دی | او هغه څه | چې په زمکه کښې دی

هغه الله ﷻ چې په زمکه او اسمانونو کښې څهٔ دی هغه ټول د هغهٔ ملکیت دې

وَوَیۡلٌ لِّلۡکٰفِرِیۡنَ مِنۡ عَذَابٍ شَدِیۡدِۣ ۙ ② الَّذِیۡنَ یَسۡتَحِبُّوۡنَ الۡحَیٰوۃَ الدُّنۡیَا

او هلاکت دې | دپاره د کافرانو | د عذاب | سخت نه | هغه کافران | چې غوره کوی | ژوند د دنیا

او کافرانو دپاره د ډیر سخت عذاب هلاکت دې | یعنی هغه خلق چې د آخرت په مقابله کښې د دنیا

عَلَی الۡاٰخِرَۃِ وَیَصُدُّوۡنَ عَنۡ سَبِیۡلِ اللّٰهِ وَیَبۡغُوۡنَهَا ۔ عِوَجًا ؕ

په اخرت باندې| او منع کوی خلق | د لارې د الله نه | او لټوی دوئ دغې لاره کښې | کوږ والې

ژوند خوښوی | او خلق د الله ﷻ د لارې نه منع کوی | او په هغې کښې عیبونه لټوی

[1] الطبراني، مجمع الزوائد: ۱٤٩/٧.

| اُولٰٓئِكَ فِیْ ضَلٰلٍۭ بَعِیْدٍ ۝ |
|---|
| دا کسان \| په گمراهئ \| لرې کښې دی \| |
| هغوی په گمراهئ کښې لرې رسیدلی دی \| |

قوله تعالی:: لِتُخْرِجَ النَّاسَ مِنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ ۙ

**مومن په رڼراکښې اوکافرپه تیاروکښې:-** حروف مقطعه کوم چه د سورتونوپه شروع کښې راځی د هغې بیان اول تیر شوې دې. اې نبیﷺ دا عظیم الشان کتاب مونږ ستا طرف ته نازل کړې دې. کتاب د ټولوکتابونونه اعلی رسول دټولو رسولانونه افضل اوبالا،چرته چه نازل شوې هغه ددنیا دټولو ځایونونه بهترین او ښکلې د دې ږومبې صفت دا دې د دې په ذریعه ته خلق د تیارونه د رڼرا طرف ته راویستې شې. ستا ږومبې کار دا دې چه گمراهئی په هدایت سره او بدئی په نیکوسره بدلې کړې. د ایماندارو ملګرې پخپله الله ﷻ دې هغه دوی د تیارونه رڼرا طرف ته راوړې او کافرانو سره د الله ﷻ نه سوا نور څوك دی چه هغوی درڼرا نه راوباسی اوپه تیاروکښې انخلوی. الله ﷻ په خپل غلام باندې خپل روښانه او واضح نښې رانازلوی چه هغه تا د تیارو نه اخوا کړې او رڼرا ته دې اورسوی. اصل هدایت کونکې هم الله دې. درسولانو په لاس د چا هدایت چه هغه ته منظور وی هغوی لار بیامومی اوغیر مغلوب پوره غالب زبردست او په هر څیز باندې بادشاه جوړیږی.او په هرحال کښې تعریف کونکی د الله ﷻ د لارې طرف ته د هغوی لار خودنه کوی. د(اللّٰهِ الَّذِیْ) الاية يو قراءت د جر دې بل قرات د رفع دې. اولنې قراءت د صفت په توگه دې او دوئم قراءت د نوې جملې په توگه لکه چه آیت ﴿قُلْ یٰٓاَیُّهَا النَّاسُ اِنِّیْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَیْكُمْ جَمِیْعَا الَّذِیْ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ کښې کوم کافرستا مخالف دی تانه منی هغوی به دقیامت په ورځ په سخت عذاب کښې وی. دا خلق دنیا له په آخرت باندې غوره والې ورکوی. د دنیا د پاره پوره کوشش کوی او آخرت ئې هیر کړې دې. دوی به هم په دې ضلالت او جهالت کښې وی ولې د الله ﷻ لار ګگه نه شوه اونه به وی نو بیا په داسې حالت کښې د هغوی د صلاحیت څه امید؟

| وَمَآ اَرْسَلْنَا | مِنْ رَّسُوْلٍ | اِلَّا | بِلِسَانِ قَوْمِهٖ | لِیُبَیِّنَ |
|---|---|---|---|---|
| او نه دی لیږلې مونږ \| | یو رسول \| | مگر \| | په ژبه دقوم خپل سره \| | دپاره ددې چې ښهٔ پوهه کړی |
| اومونږ چې کله هم یو رسول لیږلې دې \| نو هغه خپل قوم ته هم دهغوئ په ژبه کښې پیغبم رسولې دې | | | | |

| لَهُمْ ؕ | فَیُضِلُّ اللّٰهُ | مَنْ یَّشَآءُ | وَیَهْدِیْ |
|---|---|---|---|
| هغوئ لره \| | نو بې لارې کوی الله \| | هغه څوك چې غواړی هغهٔ \| | او لاره ښائی |
| اچې زمونږ حکمونه ورته په تفصیل سره بیان کړی\|بیا الله چاته اوغواړی نو گمراه ئې کړی | | | |

| مَنْ | یَّشَآءُ ؕ | وَهُوَ الْعَزِیْزُ | الْحَکِیْمُ ۝ |
|---|---|---|---|
| هغه چاته \| | چې غواړی هغهٔ \| | او هغهٔ غالب \| | او حکمت والا دی |
| \|او چې چاته اوغواړی نو هدایت ورته اوکړی\|او هغهٔ غالب اود حکمت خاوند دې | | | |

قوله تعالی:: وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا بِلِسَانِ قَوْمِهٖ لِیُبَیِّنَ لَهُمْ ؕ

**هریو نبی دهغه په قومی ژبه کښې لیږلې شی:-** دا د الله ﷻ د اوچتې درجې مهربانی ده چه هر نبی د هغه په قومی ژبه کښې رالیږلې دې د دې د پاره چه په پوهولوکښې آسانی وی. په مسند کښې دی رسول

الله ﷺ ته الله ﷻ فرمائي هر نبي او رسول الله ﷺ د هغه امت ته هم د هغوی په ژبه کښې لیږلې دی.([1]) حق خو په هغوی باندې کولاوېږي او بیا خو هدایت او ضلالت هم د الله ﷻ په لاس کښې دې د هغه د غوښتلو نه بغیرپوکار هم نه کیږي.هغه غالب دې دهغه هر یوکار په حکمت سره وي.ګمراه هم هغه کیږي چه ددې مستحق وي او په هدایت باندې هم هغه راځي چه د هغې مستحق وي.

**د نبی اخر نبوت عام دی:**هریو نبی خپل خپل قوم ته راځی په دې وجه هغه ته هم دهغه د قوم په ژبه کښې د الله ﷻ کتاب ملاویدلو اود هغه خپله ژبه به هم دغه وه.دحضورﷺ رسالت عام وو د ټولې دنیا ټولوقومونوته هغویﷺ رسول وولکه چه پخپله دحضورﷺفرمان دې چه ماته پنځه څیزونه په خصوصیت سره راکړې شوی دی چه یو نبی ته هم نه دی ورکړی شوی. د پوره میاشت په لار سره صرف رعب سره زما امداد کړې شوې دې زما د پاره ټوله زمکه جمات او پاکه ګرځولې شوې ده په ما باندې د غنیمت مال حلال کړې شوې دې چه مانه اول د چا د پاره هم حلال نه وو.ماته شفاعت راکړې شوې دې. هر یو نبی به صرف د خپل قوم طرف ته راتلو او زه د ټول عام خلقو طرف ته رسول الله جوړکړې شوې یم.([2])قرآن هم دا فرمائي چه اې نبي اعلان اوکړه چه زه ستاسو د ټولو طرف ته د الله ﷻ رسول(ﷺ) یم.

| وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا | مُوْسٰى | بِاٰيٰتِنَآ | اَنْ اَخْرِجْ | قَوْمَكَ |
|---|---|---|---|---|
| او لیږلې دې مونږ | موسی | د نښنو زمونږ سره | چې راوباسه | قوم خپل |
| اومونږ موسی ﷺ په خپلو نښنو سره لیږلې وو چې خپل قوم | | | | |

| مِنَ الظُّلُمٰتِ | اِلَى النُّوْرِ ۙ | وَذَكِّرْهُمْ | بِاَيّٰىمِ اللّٰهِ ؕ |
|---|---|---|---|
| دتیارو نه | رڼا ته | او نصیحت او کړه هغوئ ته | په عبرتناك تاریخ د الله سره |
| د(جهالت)د تیارو نه (دعلم) رڼا ته راوله\| اوهغوئ ته دالله (عبرتناك تاریخي) واقعات وریاد کړه | | | |

| اِنَّ | فِيْ ذٰلِكَ | لَاٰيٰتٍ | لِّكُلِّ | صَبَّارٍ | شَكُوْرٍ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه | په دې واقعاتو دتاریخ کښې | خامخا نښې دی | د پاره د هر | صبرناك | شکرایستونکی سړی |
| په دې کښې دهر صبر کونکی شکر ویستونکی دپاره لوئې لوئې نښې دی. | | | | | |

**قوله تعالى::** وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مُوْسٰى بِاٰيٰتِنَآ

**حضرت موسیﷺدبنی اسرائیلو طرف ته:** لکه څنګه چه ته مونږ خپل رسول جوړکړې لیږلې او په تا باندې مې خپل کتاب نازل کړې دې چه ته خلق د تیارو نه راوباسې او رڼا طرف ته ئې کړې. دغه شان مونږ حضرت موسی ﷺ د بنی اسرائیلو طرف ته لیږلې وو. ډیرې نښې هم ورکړې وې د کومو بیان چه﴿وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسٰى تِسْعَ اٰيٰتٍ بَيِّنٰتٍ فَسْــَٔلْ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ اِذْ جَآءَهُمْ فَقَالَ لَهٗ فِرْعَوْنُ اِنِّيْ لَاَظُنُّكَ يٰمُوْسٰى مَسْحُوْرًا۝﴾ کښې دی.هغه ته هم دغه حکم وو چه خلقو ته د نیکئی دعوت ورکړه. هغوی د تیارونه رڼا ته راوباسه اودجهالت او ضلالت نه ئې اخوا کړه د علم او هدایت طرف ته ئې راوله. هغوی ته د الله ﷻ احسانونه یاد کړه چه الله ﷻ د فرعون غونډې ظالم او جابرد غلامئی نه آزادکړل. د هغوی د پاره ئې دریاب اودرولو او په هغوی باندې د اوریځو سورې اوکړو او په هغوی باندې (من اوسلوی) نازل کړه او نور ئې هم ډیر نعمتونه ورکړه. د مسند احمد په مرفوع حدیث کښې (ایام الله)تفسیر دالله ﷻ په نعمتونو سره مروی دې.([3])خو په ابن

---

[1] احمد:۵/۱۸۵، مجمع الزوائد:۷/۴۳.

[2] صحیح بخاری کتاب التیمم باب قول الله تعالى ﴿فلم تجدوا ماء فتیمموا صعیدا طیبا...﴾:۳۳۵، صحیح مسلم:۵۲۱.

[3] احمد:۵/۱۲۲، الطبری: ۱۳/۱۸٤، صحیح مسلم: کتاب الفضائل باب من فضائل الخضر:۲۳۸۰.

ډیر کښې د حضرت ابی بن کعب ﷺ نه دا مرفوعا هم راغلې دې او هم دا ډیر صحیح دی. موږ چه خپلو بندیګانو بني اسرائیلو سره کوم احسان اوکړو د فرعونه نه خلاصې ورکول د هغه د ذلیل عذابونو نه خلاصول په دې کښې دهرصابر او شاکر د پاره عبرت دې. چه په مصیبت کښې د صبر او راحت کښې شکر کونکی دی.

**ښه بنده هغه دې چې مصیبت کښې صبر اوکړي::** قتاده رحمه الله فرمائي ښه بنده هغه دې چه د سختئ په وخت کښې صبر اوکړي اودنرمئ په وخت کښې شکر اوکړي. په صحیح حدیث کښې دی رسول الله ﷺ فرمائي د مؤمن ټول کار عجیبه دې چه هغه ته مصیبت اورسي نو صبر کوي هم دغه د هغه په حق کښې بهتر وي اوکه هغه ته راحت او آرام ملاؤشي نوشکر کوي اوددې انجام هم دهغه دپاره بهتر وي.(¹)

وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهِ اذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ

اوکله چې | اووئیل | موسی | قوم خپل ته | یادکړئ | نعمت د الله | چې کړې ئې دې په تاسو باندې

اوکله چې موسی خپل قوم ته اووئیل| چې د الله هغه مهربانئ یادې کړئ اکومې چې ئې په تاسو کړې دی

اِذْ اَنْجٰىكُمْ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ يَسُوْمُوْنَكُمْ

کله چې | هغه خلاصې درکړو تاسو ته | د ملګرو | دفرعون نه | چې رسوله به ئې تاسو ته

څه وخت چې هغهٔ تاسو ته د فرعون د قوم نه نجات درکړو| چې تاسوته به ئې سخت

سُوْٓءَ الْعَذَابِ وَيُذَبِّحُوْنَ اَبْنَآءَكُمْ وَيَسْتَحْيُوْنَ نِسَآءَكُمْ ط

سختي دعذاب | او ذبح کول به ئې | خامن ستاسو | او ژوندئ به ئې پریښودلې | ښځې ستاسو

تکلیفونه درکول | اوستاسو خامن به ئې ذبح کول |او ستاسو لونړه به ئې ژوندئ پریښودلې

وَفِيْ ذٰلِكُمْ بَلَآءٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ عَظِيْمٌ ۞ وَاِذْ تَاَذَّنَ

او په دې کار ستاسو کښې | ازمیښت وو | دطرفه درب ستاسو نه | لوئ |او کله چې | خبر اوکړو

اوپه دې کښې ستاسو د رب د طرفه ډیر لوئې امتحان وو| ............او هغه وخت یاد کړئ چې ستاسو

رَبُّكُمْ لَئِنْ شَكَرْتُمْ لَاَزِيْدَنَّكُمْ وَلَئِنْ

رب ستاسو | که چرې | شکر اوویستو تاسو | خامخا زیات به درکړم تاسو ته | او که چرې

رب تاسو ته خبر درکړو|که تاسو زما شکر اوباسئ انو زهٔ به ستاسو په نعمتونو کښې زیاتې اوکړم|اوکه

كَفَرْتُمْ اِنَّ عَذَابِيْ لَشَدِيْدٌ ۞ وَقَالَ مُوْسٰٓى اِنْ تَكْفُرُوْٓا

ناشکري اوکړه تاسو | نو بیشکه عذاب زما | ډیر سخت دې | او اووئیل موسی | که چرې کفر اوکړئ

تاسوناشکري کوئ | نو زما عذاب ډیر سخت دې | اوموسی علیه السلام اوفرمائیل که تاسو

اَنْتُمْ وَمَنْ فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا ۙ فَاِنَّ اللّٰهَ لَغَنِيٌّ

تاسو | او هغه څوك | چې په زمکه کښې دی | ټول | نوبیشکه الله | غنی (بې پروا) دې

او د زمکې په مخ ټول اوسیدنکی د الله ﷻ نه انکار اوکړي | نو الله ﷻ ترې نه بې پرواه دې

---

(¹)صحیح مسلم کتاب الزهد باب المؤمن امره کله خیر:۲۹۹۹،ابن حبان:۲۸۹۶،احمد:۳۳۲/۴،المعجم الکبیر:۷۳۱۶، شعب الایمان۴۴۸۷

| حَمِيدٌ۝ |
| --- |
| ستائيلي شوي دی ا |
| او ستائيلي شوي دی ا |

قوله تعالى:: اذْكُرُوا نِعْمَةَ اللهِ عَلَيْكُمْ

**په بنی اسرائيلو د الله ﷻ احسانات:** د الله ﷻ د فرمان مطابق حضرت موسی ﷺ خپل قوم ته د الله ﷻ نعمتونه يادوی.مثلا د فرعونيانونه هغوی له خلاصي ورکول چه هغوی نی بې وقعته کړي وو او قسم قسم ظلمونه نی پرې کول تردې پورې چه ټول نارينه اولاد نی ورله قتل کړی وو صرف جينکئی به نی ژوندنی پريخودلې.دا نعمت دومره لوئ دی چه تاسو ددی د شکراداکولوطاقت نه لرئ. ددې جملې مطلب دا هم کيدې شی چه د فرعونيانو تکليفونه په اصل کښې ستاسو يو ډير لوئ ازميښت وو او داهم احتمال دی چه دواړه معنې مرادوی. والله اعلم.

لکه څنګه چه د الله ﷻ فرمان دې (وَبَلَوْنٰهُمْ بِالْحَسَنٰتِ وَالسَّيِّاٰتِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ۝)يعنی مونږ هغوی په بدنی او نيکئی سره ازميښت کړل چه هغوی واپس شی.کله چه الله ﷻ ته خبرکړي او دا هم ممکن دی چه کله الله ﷻ د خپل عزت جلالت او لويئ قسم اوخوړلو لکه چه آيت (وَاِذْ تَاَذَّنَ رَبُّكَ لَيَبْعَثَنَّ عَلَيْهِمْ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ مَنْ يَّسُوْمُهُمْ سُوْٓءَ الْعَذَابِ ۭ اِنَّ رَبَّكَ لَسَرِيْعُ الْعِقَابِ ښ وَاِنَّهٗ لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ۝) کښې نو د الله ﷻ آخری وعده اوشوه اود دې اعلان هم چه دشکر کونکو نعمتونه به زيات شی اود ناشکری کونکو نعمتونه د منکرانو اود هغې د پټونکو نعمتونه به په زور سره واخستې شی او هغوی ته به سخته سزا ورکولې شی.

**انسان د ګناه په وجه درزق نه محروموليږ شی:** په حديث شريف کښې دی چه بنده د ګناه په وجه د الله ﷻ د رزق نه محروم کولې شی([1])مسنداحمدکښې دی رسول الله ﷺ سره يو سوال کونکې تيرشو، حضور ﷺ هغه ته يوه کهجوره ورکړه هغه خفه شو او کهجوره نې وانخسته. بيا دوئم سوال کونکې تريدو نو حضور ﷺ هغه ته دغه کهجوره ورکړه. هغه دا په خوشحالئی سره واخسته او ونی وئيل د الله ﷻ د رسول ﷺ ورکړه ده. حضور ﷺ هغه ته شل درهمه ورکولو حکم اوکړو او په يو روايت کښې دی چه حضور ﷺ خپلې خادمې ته اووئيل دې بوخه او ام سلمه ﵂ سره څلويښت درهمه دی هغه ده لره ورکړه.([2]) حضرت موسی ﷺ بنی اسرائيلوته اوفرمائيل تاسو ټولو او په مخ د زمکې ټولومخلوقاتوهم که د الله ﷻ ناشکری اوکړی نو د الله ﷻ به څه اوکړی؟ هغه د بنديګانو اود هغوی د شکر کولونه بې نيازه او بې پرواه دې.دتعريفونومالك او قابل هم هغه دې.

ارشاد دې (اِنْ تَكْفُرُوْا فَاِنَّ اللهَ غَنِيٌّ عَنْكُمْ)که تاسو کفراوکړئ نو الله ﷻ تاسونه غنی دې اويه آيت کښې دی (فَكَفَرُوْا وَتَوَلَّوْا وَّاسْتَغْنَى اللهُ ۭ) هغوی کفر اوکړو مخ نی واړولو نو الله ﷻ بالکل دهغوی نه بې پرواه شو. په صحيح مسلم کښې حديث قدسی دې الله ﷻ فرمائی اې زما بنديګانو که تاسو ټول اول او آخر انسانان او پيريان يو ځائ شئ اود بهترين تقوی والا سړی د زړه په شان جوړشئ نو دې سره به زما بادشاهی لره شان هم زياته نه شی. اوکه ستاسو ټول روستی مخکښی انسانان او پيريان د بدترين زړه والا جوړشی نو په دې وجه سره به زما په بادشاهئ کښې يوه ذره هم کمې رانه شی. اې زما بنديګانو که ستاسو ټول ړومبی روستی انسانان او پيريان په يوميدان کښې اودريږی او مانه غواړی اوزه د هريو کس سوال پوره کړم نو هم به زما په خزانوکښې دومره کمې راشی څومره کمې چه په سمندرکښې ستن

[1] ابن ماجه کتاب الفتن باب العقوبات: ۴۰۲۲.

[2] احمد:۱۵۵/۳، البزار:۹۳۹، شعب الايمان کښې هم مختصر موجوددې، تقريب: ۳۵۸/۱.

اچولو سره وی([1])نو زمونږه رب پاك دي غني دي اوچت دي او حمید دي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| اَلَمْ يَاْتِكُمْ | نَبَؤُا | الَّذِيْنَ | مِنْ قَبْلِكُمْ |
| آیا نهٔ دي راغلي تاسو ته | خبر | د هغه کسانو | چي وو مخکښي ستاسو نه |
| ......آیا تاسو ته د هغه خلقو واقعات نهٔ دي راغلي | | | چي ستاسو نه وړاندي وو |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قَوْمِ نُوْحٍ | وَّعَادٍ | وَّثَمُوْدَ | وَالَّذِيْنَ | مِنْ بَعْدِهِمْ |
| (یعني خبر)د قوم د نوح | او خبرد عاد قوم | او د ثمود قوم | او د هغه کسانو | چي روستو د هغوئ نه ووُ |
| د نوح ﷺ د قوم اود عادیانو اود ثمودیانو او د هغي تولو قومونو چي د هغوی نه روستو راغلی وو | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| لَا يَعْلَمُهُمْ | اِلَّا اللّٰهُ | جَآءَتْهُمْ | رُسُلُهُمْ |
| چي شماره د هغوئ معلومه نهٔ ده هیچاته | مگر الله ته | راغلل هغوئ ته | رسولان د هغوئ |
| د هغوئ شمیره بي د الله ﷻ نه بل چاته معلومه نهٔ ده | | هغوئ ته خپلو پیغمبرانو | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِالْبَيِّنٰتِ | فَرَدُّوْٓا | اَيْدِيَهُمْ | فِيْٓ اَفْوَاهِهِمْ | وَقَالُوْٓا اِنَّا كَفَرْنَا |
| دصفانبنو سره | نو ویوړل هغوئ | لاسونه خپل | په خلو خپلو کښي | او وي وئیل بیشکه مونږ نهٔ منو |
| ښکاره نخښي راوړي وي | اوهغوئ خپل لاسونه د دغو پیغمبرانو په خلو کښي ورکړل | | | اووي وئیل چي |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِمَآ | اُرْسِلْتُمْ | بِهٖ | وَاِنَّا | لَفِيْ شَكٍّ |
| هغه پیغام | چي تاسو رالیږلی شوی یئ | د هغي سره | او بیشکه مونږ | په شك کښي يو |
| مونږستاسو په ذریعه رالیږلی شوی حکمونو نه انکار کوؤ | | | او تاسو چي مونږ کوم دین طرف ته رابلئ | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| مِّمَّا | تَدْعُوْنَنَآ | اِلَيْهِ | مُرِيْبٍ۝ |
| د هغه خبري نه | چي تاسو رابلئ مونږ | هغي ته | (هغه شك) چي سخت پریشانه کونکي دي |
| د هغي په باره کښي زمونږ (په زړونو کښي) شك او تردد دي | | | |

**قوله تعالی:: اَلَمْ يَاْتِكُمْ نَبَؤُا الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ**

**دموسی ﷺ بنی اسرائیلوته وعظ:-** دحضرت موسی ﷺ باقی وعظ بیانیږی. هغوی خپل قوم ته د الله ﷻ نعمتونه وریادولو سره اوفرمائیل چه گورئی تاسو نه وړاندې خلقو رسولان دروغ گنړلو سره په هغوی باندې څومره سخت عذابونه راغله او څنگه هغه غرق کړې شو.دابن جریر رحمه الله دا قول لږ شان تامل غواړی. په ظاهره خوداسې معلومیږی چه هغه وعظ ختم شوې دې اوس دا دقرآن نوې بیان دې.مستقل کلام دې او دې امت ته خطاب دې. ونیلې شوی دی چه د عادیانو او ثمودیانو واقعات خو په تورات کښې هډوله وونه. نوکه هم دا خبره هم دموسی ﷺ اومنلې شی نوښکاره خبره ده چه د هغوی قصې خو د یهودیانو په وړاندې بیان شوې وې. اودا دواړه واقعات په تورات کښې وو.والله أعلم.

فی الجمله د دې خلقو اود دوی په شان دنورو ډیروخلقوواقعات قرآن کریم کښې زمونږ په وړاندې بیان شوی دی چه هغوی له د الله ﷻ پیغمبر د الله ﷻ نبنې او د الله ﷻ ورکړې شوې معجزې ورکړې راغلی وو. د هغوی د شمیرعلم صرف الله ﷻ ته دې. حضرت عبدالله رضی الله عنه فرمائی چه د نسب بیانونکی غلطه

---

[1] صحیح مسلم کتاب البر باب تحریم الظلم:۲۵۷۷، الترغیب الترهیب:۴۱۲/۲.

وينا كوي[۱] ډير امتونه داسې هم تيرشوي دي دكوم علم چه د الله ﷻ نه علاوه بل چاته نشته. د حضرت عروه بن زبير ﷺ بيان دې چه د معد ابن عدنان نه پس نسب نامه څوك هم په صحيح توګه نه پيژني.

**د لاس په خلوكښې د وا پس كولو څه مطلب دې::** هغوي خپل لاس دهغوي د خلو پورې واپس يوړل، د دې يوه معنى خو داده چه د رسولانو خُلې بند كړې.يوه معنى داهم ده چه هغوي خپل لاس په خپله خُله باندې كيخودو چه صرف دروغ دي كوم چه رسول وائي. يوه معنى داده د جواب نه لاچاره شو نو ګوتې په خپله خُله باندې كيخودې. يوه معنى دا هم ده چه په خپله خُله باندې دروغ اوګڼړل. او دا هم كيدې شي چه دلته ﴿في﴾ په معنى د"ب"وي لكه بعضې عرب چه وائي﴿ادخلك الله بالجنة يعني في الجنة﴾په شعركښې هم دا محاوره استعمال شوې ده او د مجاهد رحمه الله په قول دې نه پس جمله هم د دې تفسير ده. دا هم ونيلې شوي دي

چه هغه د غصې په وجه خپلې ګوتې په خپله خُله كښې وركړې[۲] دغه شان په بل آيت كښې د منافقانو باره كښې دي ﴿وَإِذَا خَلَوْا عَضُّوا عَلَيْكُمُ الْأَنَامِلَ مِنَ الْغَيْظِ﴾داخلق په خلوت كښې ستا دسوزيدو نه په خپلو ګوتو چكونه لګوي. داهم دي چه د الله ﷻ كلام اوريدو سره د حيرانتيانه خپل لاسونه په خپله خُله باندې ايږدي او وائي چه مونږ خو ستا د رسالت منكر يو تاربښتونې نه ګڼړو بلكه په سخت شك كښې يو.

قَالَتْ رُسُلُهُمْ أَفِي اللَّهِ شَكٌّ فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ ط

اووئيل رسولانو د هغوئ | آيا په باره دالله كښې | شك دې | چې پيدا كونكې د اسمانونو | او د زمكې دې

دهغوئ پيغمبرانوورته اووئيل | آيا تاسو دالله ﷻ په وحدانيت كښې شك كوئ | چې اسمانونه او زمكې

يَدْعُوكُمْ لِيَغْفِرَ لَكُمْ مِنْ ذُنُوبِكُمْ وَيُؤَخِّرَكُمْ

هغه رابلې تاسو | د پاره ددې چې اوبښي تاسو ته | دګناهونو ستاسو نه| او مهلت دركړي تاسوته

ئې پيداكړي دي هغهٔ خو تاسو(توحيد) ته رابلې اچې ستاسو ګناهونه معاف كړي |اوتر يوې نيتې پورې

إِلَىٰ أَجَلٍ مُسَمًّى ط قَالُوا إِنْ أَنْتُمْ إِلَّا بَشَرٌ مِثْلُنَا ط تُرِيدُونَ

دنيتې مقررې پورې | اووئيل هغوئ | چې نهٔ يئ تاسو | مګر | انسانان يئ | په مثل زمونږ | اراده لرئ

مهلت دركړي | هغوئ ورته اووئيل چې تاسو خوزمونږ غوندې انسانان يئ | ..........تاسو

أَنْ تَصُدُّونَا عَمَّا كَانَ يَعْبُدُ آبَاؤُنَا

چې تاسو منع كړئ مونږ | د هغې نه | چې عبادت به كوؤ (د هغې ) | پلارانو زمونږ

خو صرف دا غواړئ | چې مونږ د هغو(معبودانو) نه منع كړئ | چې زمونږ پلار نيكه ئې عبادت كولو

فَأْتُونَا بِسُلْطَانٍ مُبِينٍ ۝ قَالَتْ لَهُمْ رُسُلُهُمْ إِنْ نَحْنُ إِلَّا

نو راوړئ مونږ ته | يو دليل | ښكاره |اووئيل | هغوئ ته | رسولانو د هغوئ | چې نهٔ يو مونږ | مګر

ښهٔ ده نو مونږ ته يوه ښكاره معجزه راوړئ | پيغمبرانو ورته اووئيل چې مونږ خو بيشكه

[۱] الطبرى:۱۳/۱۸۷.
[۲] حاكم: ۲/۳۵۰-۳۵۲، ح۳۲۳٦.

بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَمُنُّ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ؕ

انسانان يو | پشان ستاسو | ليكن الله | احسان كوى | په هغه چا | چي اوغواړى | دبندگانو خپلو نه

ستاسو پشان انسانان يو | خو الله ﷻ چي په خپلو بندگانو كښي په چا اوغواړى | په هغهٔ احسان اوكړى

وَمَا كَانَ لَنَآ اَنْ نَّاْتِيَكُمْ بِسُلْطٰنٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ؕ

او دا زمونږ په اختيار كښي نهٔ ده | چي مونږ راوړو تاسو ته | يو دليل | مگر | په حكم د الله سره

او دا زمونږ په وس كښي نهٔ ده | چي مونږ تاسو ته د الله ﷻ دحكم نه بغير څه معجزه اوښايو

وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ۝ وَمَا لَنَآ

او خاص په الله باندي | پكار دى چي بهروسه اوكړى | مومنان | او څه شوى دى په مونږ بندي

اومؤمنانوله پكار دى چي صرف په الله تعالى باندي بهروسه اوكړى | حال دا دي چي هغهٔ مونږ ته

اَلَّا نَتَوَكَّلَ عَلَى اللّٰهِ وَقَدْ هَدٰىنَا سُبُلَنَا ؕ

چي بهروسه به نهٔ كوؤ مونږ | په الله باندي | حال دا چي هغهٔ ښودلي دى مونږ ته | لاري د ژوند زمونږ

زمونږ (ددين) طريقي ښودلي دى | او تاسو چي مونږ ته كوم تكليف راكوئ ..................

وَلَنَصْبِرَنَّ عَلٰى مَآ اٰذَيْتُمُوْنَا ؕ وَعَلَى اللّٰهِ

او خامخا به صبر كوؤ مونږ | په هغه تكليفونو باندي | چي رسوئ ني تاسو مونږ ته | او خاص په الله باندي

مونږ به په دي ضرور صبر كوؤ | او هم په الله ﷻ باندي دي توكل ........................ . . . .

فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُتَوَكِّلُوْنَ ۝ ع

پكار دى چي بهروسه اوكړى | بهروسه كونكى |

كونكو ته پكار ده چي توكل اوكړى |

قوله تعالى:: وَمَا لَنَآ اَلَّا نَتَوَكَّلَ عَلَى اللّٰهِ

**د قوم په غلطوكارونو د انبياوٌ په الله باندي توكل:** د رسولانو او دهغوى دقوم دكافرانو په مينځ كښي د خبرواترو بيان كيږى. قوم د الله ﷻ په عبادت كښي شك شبه اوكړه. په هغي باندي رسولانو اوفرمائيل چه دالله ﷻ باره كښي شك؟ يعنى دهغه په وجودكښي شك څنگه؟ فطرت دهغه د عدل شاهد دي. د انسان په بنيادكښي د هغه اقرارموجود دى. عقل سليم د دي په منلوباندي مجبور دي. ښه ده كه چري دليل بغيرد اطمينان نه وى نو گوره دا زمكه اوآسمان څنگه پيدا شو. د موجود د پاره د مؤجد كيدل ضرورى دى. دابغير د نموني نه پيداكونكي هم هغه وحده لاشريك دي. ددي عالم دنوى سر نه پيدا كيدل تابعدارا ومخلوق كيدل بالكل ښكاره دى. دي سره څه دومره لويه خبره هم په پوهه كښي نه راځى چه د دي جوړونكي د دي خالق دي. او هغه هم الله ﷻ دي چه د هر څيز خالق مالك او معبودبرحق دي. ياآيا ستاسو دهغه په الوهيت او وحدانيت كښي شك دي؟ كله چه دټولو موجوداتو خالق او پيدا كونكي هم هغه دي نو بيا به په عبادتونوكښي هغه ولي يوازي نه وى؟

**اكثرامتونه دخالق د وجود قائل وو خو::** اكثر امتونه د خالق دوجودقائل وو بيا دنورو عبادت كول ني واسطه او وسيله گڼرلو سره الله ﷻ ته نيزدي كونكى او گټه وركونكى گڼرلي وو. د دي د پاره به د الله

ﷺ پیغمبر ددوی دعبادتونو نه منع کول.چه الله ﷻ تاسو خپل طرف ته رابلی چه په اخرت کښې ستاسو گناه معاف کړی او چه کوم مقدر وخت دې د هغې پورې تاسو په نیکنی سره اورسوی. هر یو فضیلت والا ته به د هغه فضیلت ورکړی. نو امتونو رومبې مقام منلو نه پس جواب ورکړو چه ستا رسالت مونږ څنګه اومنو؟

**مشرکانوږبه انسانیت درسالت منافی گڼړلو:** په تاکښې خو انسانیت هم زمونږ په شان دې ښه ده که چرې رښتونې نې نو یوه زبردسته معجزه پیش کړه کومه چه د انسانی طاقت نه بهر وی. د دې په جواب کښې د الله ﷻ پیغمبر اونږمانیل چه دا خو بالکل حقیقت دې چه زه هم ستاسو په شان انسان یم خو رسالت او نبوت خو د الله ﷻ ورکړه ده هغه چه چا له غواړی ورکړی، انسانیت د رسالت سره منافی نه دې اوکوم څیز چه تاسو زما په لاس کښې لیدل غواړئ د هغې متعلق هم واورئ چه هغه زمونږ د وس کار نه دې اودا ده چه مونږ د الله ﷻ نه سوال اوکړو که زمونږ دعا قبوله شوه نو بې شکه مونږ به اوښايو. د مؤمنانو خو په هرکارکښې په الله ﷻ باندې توکل دې او په خصوصیت سره خو زمونږ په دې باندې ډیر یقین او توکل دې، اود دې د پاره هم چه هغه په ټولو لاروکښې مونږ ته بهترین لاره اوخودله. تاسو چه څومره غواړئ تکلیف راکړئ ان شاءالله د الله ﷻ لمن به زمونږ د لاس نه خلاصه نه شی.د متوکلینو د ډلې د پاره د الله ﷻ توکل کافی دې.

وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

| او اووئيل | هغه کسانو | چې انکاريان دی

| اوکومو خلقو چې دکفر لاره اختیاره کړه | هغوئ خپلو

لِرُسُلِهِمْ لَنُخْرِجَنَّكُمْ مِّنْ اَرْضِنَآ اَوْلَتَعُوْدُنَّ

رسولانو خپلوته | خامخا به اوباسو مونږ تاسو لره | د زمکې نه | يابه خامخا واپس راځئ تاسو

پیغمبرانو ته اووئيل | چې مونږ به تاسوضرور د خپلې زمکې نه اوباسو | يا به زمونږ مذهب ته بيا

فِىْ مِلَّتِنَاؕ فَاَوْحٰٓى اِلَيْهِمْ رَبُّهُمْ لَنُهْلِكَنَّ

په دين زمونږ کښې | نو وحي اوکړه | هغوئ ته | رب د هغوئ | چې خامخا به هلاك کړو مونږ

واپس کيږئ | نوخپل رب هغوئ ته وحي اوکړه | چې مونږ به ضرور ظالمان ..............................

الظّٰلِمِيْنَۙ وَلَنُسْكِنَنَّكُمُ الْاَرْضَ مِنْۢ بَعْدِهِمْؕ ذٰلِكَ

داظالمان | او خامخا به آباد کړو مونږ تاسو | په دغه زمکه کښې | روستو د هغوئ نه | دا(انعام دې)

تباه کوؤ | اوتاسو به د هغوئ نه پس په دغې زمکه کښې آبادوؤ | ..............دا(د انعام وعده)

لِمَنْ خَافَ مَقَامِىْ وَخَافَ وَعِيْدِ

د پاره د هغه چا | چې اوويريدو | د ودريدو نه ما ته | او اوويريدو | د وعدې د عذاب زما نه

هر هغه چاسره ده | چې زما په وړاندې اودريدو نه | او زما د وعدې نه ويريږی

وَاسْتَفْتَحُوْا وَخَابَ كُلُّ جَبَّارٍ عَنِيْدٍۙ مِّنْ وَّرَآئِهٖ

او فيصله غوښتلې وه هغوئ | نو ناکام شو | هر سرکشه | دحق دشمن (عناد کونکې) | روستو ددې نه

اوهغوئ فيصله اوغوښتله | اوهر سرکش عنادی نامراده پاتې شو | ..... (اوپه قيامت کښې) د هغهٔ

| جَهَنَّمُ | وَيُسْقٰى | مِنْ مَّآءٍ صَدِيْدٍ ۝ |
|---|---|---|
| دوزخ دې (دهغه دپاره) | اوڅکولې کيږي به په هغهٔ | د اوبو د وينو زووْ نه |

مخې ته به دوزخ وي| ......... او په هغهٔ به د وينو زوو اوبه څکولې شي

| يَّتَجَرَّعُهٗ | وَلَا يَكَادُ | يُسِيْغُهٗ | وَيَأْتِيْهِ | الْمَوْتُ |
|---|---|---|---|---|
| چې په ګوټ ګوټ به څکي هغه | اونږدې به نه وي | چې تير کړي هغه | او راځي به هغهٔ ته | مرګ |

چې ګوټ ګوټ به ئې څکي | او د مرئ نه به ئې ښکته کولې نشي | ............او دهرطرف نه به پرې

| مِنْ كُلِّ مَكَانٍ | وَّمَا | هُوَ | بِمَيِّتٍ ؕ | وَمِنْ وَّرَآئِهٖ | عَذَابٌ | غَلِيْظٌ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دهرطرفنه | حال دا چې نه به وي | هغهٔ | مرکيدونکې | او روستو د هغې نه به | عذاب | سخت وي |

مرګ راځي| خو هغهٔ به مړکيږي نه |....اود هغې (عذاب نه) پس به بل سخت عذاب ته ورمخامخ شي

**قوله تعالى:: وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِرُسُلِهِمْ**

**د کافرانو خپلو رسولانو ته دهمکياني:** کافران چه کله تنګ شو اوهيڅ حجت باقي پاتې نه شو نو انبياؤ ته ئې دهمکيانې ورکولې اود وطن نه د ويستلو نه ئې ويرول. د حضرت شعيب ؑ قوم هم خپل نبي او مؤمنانوته هم دا ونيلې وو چه تاسو به د خپل کلي نه اوباسو. لوطيانو همدغه وئيلې وو چه آل لوط د خپل ښار نه اوباسئ. د قريشو مشرکانو هم دغه منصوبه تياره کړې وه او دائې هم وئيلې وو چه قيدئې کړئ يا قتل ئې کړئ او يادملك نه ئې اوباسئ. هغوی لکه چه مکر کولوخوالله ﷻ هم به هغوی پوهيدلو وو خپل نبي ئې په سلامتياسره د مکې د ښار نه اوويستلو. دمدينې خلق ئې د هغه امداديان او انصار کړل. هغوی د حضور ﷺ په لښکر کښې شامل شواوهم د هغوی ﷺ د جهنډې لاندې کافرانوسره جنګيدل او درجه په درجه الله ﷻ هغوی له ترقي ورکړه او ترديې چه هغوی مکه هم فتح کړه. اوس خو د دين د دښمنانو منصوبې په خاؤروکښې ملاؤ شوې. د هغوی په اميدونوباندې پرښه پريوتله اود هغوی خواهشات ختم شو.د الله ﷻ دين د خلقو په سينوکښې مضبوط شو،او ډلې ډلې په دين کښې داخل شو.په مخ د زمکې په ټولودينونوباندې د اسلام دين خور شو.د رب کلمه اوچته شوه اوپه لړه شان موده کښې دمشرق نه تر مغرب پورې اسلام خور شو الحمدلله. ترديې ځاىٔ پورې فرمان دې چه يوخوا کافرانو انبياؤ له دهمکياني ورکولې بل خوا الله ﷻ د هغوی سره ربنتونې وعده اوفرمائيله چه هم دوی به هلاکيږي او دزمکې مالکان به تاسو جوړيږئ،لکه چه فرمان دې چه زمونږ کلمې زمونږ درسولانو باره کښې وړاندې والې کړې دې اوهم زمونږ لښکرې به غالبيږي. او په آيت کښې دی ﴿كَتَبَ اللّٰهُ لَاَغْلِبَنَّ اَنَا وَرُسُلِيْ ؕ﴾ الخ. الله ﷻ ليکلی دی چه زه او زما پيغمبر به غالبيږو نو الله ﷻ قوت والا دې او عزت والا دې. او په آيت کښې ارشاد مبارك دې چه د ذکر نه پس په زبور کښې هم دا ليك دې.حضرت موسى ؑ خپل قوم ته هم دغه فرمائيلې ووچه تاسو د الله ﷻ نه امداد غواړئ اوصبر کوئې،زمکه هم د الله ﷻ ده په خپلو بنديګانو کښې چه څوك غواړي واکمن به ئې جوړکړي. او انجام کارهم دپرهيزګارانودې.

**د کافرانو دهمکياني خاؤرو سره خاؤرې شوې::** يوبل ځاى کښې ارشاددې ﴿وَاَوْرَثْنَا الْقَوْمَ الَّذِيْنَ كَانُوْا يُسْتَضْعَفُوْنَ مَشَارِقَ الْاَرْضِ وَمَغَارِبَهَا الَّتِيْ بٰرَكْنَا فِيْهَا ؕ وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ الْحُسْنٰى عَلٰى بَنِيْۤ اِسْرَآءِيْلَ ۙ۬ بِمَا صَبَرُوْا ؕ وَدَمَّرْنَا مَا كَانَ يَصْنَعُ فِرْعَوْنُ وَقَوْمُهٗ وَمَا كَانُوْا يَعْرِشُوْنَ ۝﴾ ضعيفان او کمزوری خلق مونږ د مشرق او مغرب وارثان جوړکړل چرته چه زمونږ برکتونه وو. دبنی اسرائيلو دصبر په وجه چه هغوی سره زمونږ کومه بهترينه وعده وه هغه مونږ پوره کړه. د هغوی دښمن فرعون او فرعونيان اود هغوی کړې شوی تيارياني ټولې په يو ځل خاؤرو کښې يوځاى

شوي. نبیانو ته اوفرمائیلې شو چه زمکه به ستاسو په قبضه کښې راشي. دا وعده د هغه خلقو د پاره ده چه د قیامت په ورځ زما په وړاندې اودریدو نه ویریږي. او زما د ویرولو او عذاب نه ویره خوري. لکه چه فرمان دی ﴿فَأَمَّا مَنْ طَغَىٰ﴾ یعنی چاچه سرکشي اوکړه او د دنیاژوندله ئې ترجیح ورکړه د هغه ځائې دوزخ دی. او په آیت کښې دی چه د خپل رب په وړاندې د اودریدو ویره چا اوکړه هغه ته به دوه جنتونه ملاویږي.

رسولانو د خپل رب نه امداد فتح او فیصله اوغوښتله یا دا چه د هغوی قوم دا غوښتنه اوکړه لکه چه د مکې قریشو وئیلې وو چه که دا حق وی نو په مونږ باندې د آسمان نه کاڼي راوروه او یا څه دردناك عذاب راکړه او دا هم کیدې شي چه یو طرف ته د کافرانو مطالبه شوې وی او بل طرف ته رسولانو هم الله ﷻ ته دعا کړې وی لکه چه د بدر په ورځ شوې وو چه یو طرف ته رسول الله دعا غوښتله بل طرف ته د کافرانو سردارانو وئیل چه یا الهی نن ربنتونی غالب کړې، او همدغه اوشو. مشرکانوته په کلام الله کښې یوبل ځائې کښې فرمائیلې شوی دی چه تاسو فتح غوښتله نو واخلئی هغه اوس راغله که اوس هم منع شوئی نو ستاسو په حق کښې به بهتره وی الخ. نقصانیان هغه دی چه کیرژن دی. خپل خان څه شمیری، د حق سره دښمنی ساتي. د قیامت په ورځ به فرمان کیږي چه هر یو کافر او سرکش او نیکئي نه منع کیدونکې دوزخ کښې داخل کړئی چه الله ﷻ سره ئې د نورو هم عبادت کولو هغوی سخت عذاب ته بوځئی. په حدیث شریف کښې دی چه د قیامت په ورځ به دوزخ الله ﷻ راولی هغه به ټول مخلوق ته آواز کوی او وائي به چه زه د هر یوسرکش او ضدی د پاره مقرر کړې شوې یم الخ.(١) هغه وخت به د دې بدانوخلقو څه خراب حال وی او ترانبیاؤ پورې به د الله ﷻ په وړاندې ژړاکانې او زاری کوی. دوراء دلته معنی ده امامه(مخامخ) لکه چه آیت ﴿وَكَانَ وَرَآءَهُم﴾کښې دی.د ابن عباس ﷺ قرامت ﴿وكان امامهم ملك﴾ دی. غرض دا چه مخامخ به دوزخ د هغوی په تلاش کښې وی کوم ته په تلو چه به بیا راوتل نه وی.

**د دوزخیانو خوراك او ددوی حالت:**:د قیامت د ورځې پورې خو هغه سحر مابنام پیش کیدلو خواوس ئی هغه کور جوړ شو بیا به هلته د هغوی د پاره د اوبوبه بدله کښې د اور په شان وینې زوې دی اود حد نه زیات یخې او خراب بونی والا اوبه دی چه د دوزخیانو د زخمونونه روانې دی. لکه چه فرمانی ﴿هَٰذَا فَلْيَذُوقُوهُ حَمِيمٌ وَغَسَّاقٌ﴾په ګرمئی کښې دحدنه زیات ګرم.صدید وائی (٢)د پیپ او وینې چه د دوزخیلو د غوښې نه اود هغوی د ځرمنونه بهیږی. (٣)هم دې ته ﴿طينة الخبال﴾ هم وئیلې شی. په مسند احمدکښې دی چه کله هغوی له راوړلې شی نوهغوی ته به سخت تکلیف وی. خلې ته په نیزدې کولو سره به د مخ ځرمن اوسوزی او په هغې کښې به راوغورزیږی او یو ګوټ اخستو باندې به د خیټې کولمې د متیازو په ځائې بهر راوځی(٤)د الله ﷻ فرمان دې چه په هغوی باندې به ګرمې خوټکیدلې اوبه څکولې شی چه د هغوی کولمې به پریکړی. اوارشاد دې چه د فریاد کولو په صورت کښې هغوی ته د ویلې کړې تامبې په شان اوبه ورکولې شی. چه مخ به سوزوی. (٥)په زور به ګوټ ګوټ تیروی او فربنتې به ئی د اوسپنې په ګرځ په وهلووهلو پرې څکوی. د خراب خوند خراب بونی سختې ګرمئی یا

---

(١) ترمذی کتاب صفة الجهنم باب ماجاء فی صفة النار: ٢٥٧٤معنًا وهوحسن، احمد:٣/٤٠، مسندابی یعلی:١١٣٨.
(٢) احمد:٦/٤٦٠وسنده حسن، مجمع الزوائد: ٥/٦٩.
(٣) احمد:٣/١٧٨وسنده حسن، مجمع الزوائد:٥/٦٩،السنن الکبری:٥٢١٨،ابن ابی شیبه:٢٦٥٨٤.
(٤) ٤٧/محمد:١٥.
(٥) احمد: ٥/٢٦٥،ترمذی کتاب صفة جهنم باب ماجاء فی صفة تراب اهل النار: ٢٥٨٣، السنن الکبری:١١٢٦٣ ، حاکم:٢/٣٥١ خودَ سورة الکهف آیت ٢٩ مطابق دَ دې معنی صحیح ده.

سختې یخنئي په وجه به د مرئي نه نه تیرېږي. په بدن کښې په اندامونو کښې او په جوړونو کښې به ئي هغه دردونه او تکلیف وي چه د مرګ مزه به ورشي خو مرګ به نه راځي. په رګ رګ به ئي عذاب وي خو ساه به ئي نه اوځي. وار په وار اود برداشت کیدو نه بهر مصیبتونو کښې به راګیر وي خوولې روح به ئي د بدن نه جدا کیږي.د وړاندې نه روستونه ښي طرف نه ګس طرف نه به مرګ راځي خورارسي نه قسم قسم عذابونو د دوزخ راګیرکړې وي خو مرګ به غوښتو سره هم نه راځي. نه به مرګ راځي اونه به عذاب ځي. هره سزا دومره به وي چه د مرګ د پاره به د کافي نه زیاته وي خو هلته خو مرګ له مرګ راغلې وي دې د پاره دا سزاګانې د همیشه د پاره وي. دې ټولو خبرو سره بیا د سخت مصیبت او دردناك عذاب به نور دا وي چه لکه د زقوم د ونې باره کښې فرمائي چه هغه د دوزخ د بیخ نه راوخې د کومې غوټې چه د شیطانانوډ سرونو په شان دي هغه به دوي خوري او په ډکه خیټه به ئي خوري بیا به خوټکیدلې تیزې ګرمې اوبه خیټې ته لاړې شي دې سره به ملاؤ شي بیا د هغوي واپس کیدل هم د دوزخ طرف ته دي. لنډه دا چه کله به زقوم خوري کله به حمیم څکي کله به اُور کښې د سوزیدو او کله د صدید څکلوعذاب ورکړې کیږي.دالله ﷻ پناه. د الله ﷻ فرمان دې ﴿هٰذِهٖ جَهَنَّمُ الَّتِیْ یُکَذِّبُ بِهَا الْمُجْرِمُوْنَ﴾ الخ دا هم هغه دوزخ دې چه کافرانو به دروغ ګڼړلو. نن به هغوي د دوزخ خوټکیدلو تیزو ګرمو اوبو کښې چکرې خوري ګرځي به. او په آیت کښې دي چه د زقوم ونه د ګناهګارانو خوراك دې چه د ویلې شوې تانبې په شان به وي. خیټې ته په تلوبه خوټکیږي او داسې جوش به وهي لکه څنګه چه ګرمې اوبه خوټکیږي اوړې راوړي. دوي اونیسه او د دوزخ بیخ ته ئي اورسوه بیا د دوي په سرونو ګرمواوبو اړولو عذاب ورکړه چه مزه اوڅکې. ته خو په خپل خیال کښې ډیر عزیز وې او ډیر کریم وې، همدغه دې کوم کښې چه تا د همیشه نه شك کولو. په سورة واقعه کښې ارشاد دې چه کومو خلقو ته به ګس لاس کښې عمل نامه ورکړې شي څنګه خراب خلق دي په ګرمه هوا او ګرمو اوبوکښې به پراته وي او د لوګو په سورې کښې چه نه به یخ وي اونه به د عزت والا. په دونم آیت کښې دي د سرکشانو د پاره د جهنم لوئ کور دې کوم کښې چه به هغوي داخلیږي اوهغه داوسیدو ډیر خراب ځائ دې. دې مصیبت سره تیزې ګرمې اوبه پیپ او وینې اود دې په شان نور هم قسم قسم عذابونه به وي چه دوزخیان به ئي برداشت کوي کوم چه دالله ﷻ نه سوا بل هیڅ څوك نه پیژني.دابه دهغوي دعملونو بدله وي نه چه د الله ﷻ ظلم

| مَثَلُ | الَّذِیْنَ | کَفَرُوْا | بِرَبِّهِمْ | اَعْمَالُهُمْ | کَرَمَادِ |
|---|---|---|---|---|---|
| مثال | د هغه کسانو | چې کفر ئې اوکړو | په رب خپل سره | عملونه د هغوئ | پشان د ایرو دي |
| چا چې د خپل رب نه انکار کړې دې | د هغوئ د عملونومثال د هغه ایرې په شان دې | | | | |

| اِشْتَدَّتْ | بِهِ | الرِّیْحُ | فِیْ یَوْمٍ | عَاصِفٍ | لَا یَقْدِرُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې تیزه راشي | په هغې باندې | سیلئ (هوا) | په ورځ | طوفاني کښې | نه به قادریږي هغوئ |
| چې په طوفاني ورځ کښې پرې تیز اوتند باد راشي | ...... څه چې دوئ کړي وي د هغې | | | | |

| مِمَّا | کَسَبُوْا | عَلٰی شَیْءٍ | ذٰلِكَ | هُوَ الضَّلٰلُ | الْبَعِیْدُ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| د هغه عمل نه | چې کړې وي هغوئ | په هیڅ خیز باندې | دا | هغه ګمراهي ده | داخرې درجې |
| نه به دوي هیڅ فائده وانخستې شي | ...... هم دا ښکاره لویه ګمراهي ده | | | | |

**قوله تعالٰی:: کَرَمَادِ اِشْتَدَّتْ بِهِ الرِّیْحُ فِیْ یَوْمٍ عَاصِفٍ**

د بې **فائدې عمل مثال:** کافران چه الله ﷻ سره د نورو د عبادت عاشقان وو،دپیغمبرانو ئې نه منل. د چا عملونه چه داسې وولکه بغیرستنو عمارت د څه نتیجه چه دا شوه چه د سخت ضرورت په وخت

کښې تش لاس ولاړ پاتې شو.نوفرمان الهی دې چه د دې کافرانو يعني د دوی د عملونو مثال د قيامت په ورځ چه دوی به پوره محتاج وی پوهيږی به چه اوس هم زمونږ د نيکو بدله مونږ ته ملاؤشوه خو څه به هم نه بيامومي نااميده به وی. د ارمانه به مخونوته کوری لکه د تيزې هوا په ورځ چه هوا ايره والوزوی او ذره ذره ئې اخواديخوا کړی. دغه شان به د هغوی عملونه صرف بې کاره شی لکه څنګه چه شيندلې شوې ايره راجمع کول محال دی دغه شان به د هغوی بې کاره عملونو بدله محال وی اوهغه خو به هلته وی هم نه. د هغوی د راتلونه اول ﴿هَبَآءً مَّنْثُوْرًا﴾ شو.د الله ﷻ ارشاد دې ﴿مَثَلُ مَا يُنْفِقُوْنَ فِيْ هٰذِهِ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا كَمَثَلِ رِيْحٍ فِيْهَا صِرٌّ اَصَابَتْ حَرْثَ قَوْمٍ ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَاَهْلَكَتْهُ ؕ وَمَا ظَلَمَهُمُ اللّٰهُ وَلٰكِنْ اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ﴾ داکافران چه کوم څه ئې د دنيا په ژوندکښې خرچ کړی ددې مثال به د هغه أور د ګولې وی لکه څنګه چه د دې ظالمانو فصل اوسيزی. الله ﷻ ظالم نه دې ولې هغوی پخپله په خپلو ځانونو ظلم کړې دې.

**خپلې نيکئ په زباتولوسره ندی بربادول پکار:** اوپه آيت کښې دی چه ايماندار وخپلې صدقې او خيراتونه په احسان کولو سره او تکليف ورکولو سره مه بربادونې. لکه چه هغوی د رياکارئ د پاره خرچ کوی او په الله ﷻ او قيامت باندې ايمان او يقين نه لری. د دې مثال دهغه ښوی کاڼړی په شان دې په کوم چه خاوره وه خود باران اوبو هغه اووينځلو او اوس هغه بالکل صفاشو. دا خلق خپلې ګټې نه په هيڅ څه څيز قادر نه دی.الله ﷻ د کافرانو لارخودنه نه کوی. په دې آيت کښې ارشاد اوشو چه دا د لرې ګمراهی ده. د دوی کوشش د دوی کار بې ښو او نه پاتې کيدونکې دې. د سخت حاجت مندئ په وخت کښې به ډير کم ثواب بيامومي اوهمدغه د لرې بدنصيبی ده.

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ؕ اِنْ يَّشَاْ

ايا نۀ وينې تۀ | چې بيشکه الله | پيدا کړل | اسمانونه | او زمکه | په حقه سره | که اوغواړی هغۀ

ايا تا نۀ دی ليدلی چې الله ﷻ اسمانونه او زمکه په مقصد باندې پيدا کړی دی | که هغۀ اوغواړی

يُذْهِبْكُمْ وَيَاْتِ بِخَلْقٍ جَدِيْدٍ ۙ﴿۱۹﴾ وَّمَا ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ بِعَزِيْزٍ ﴿۲۰﴾

نولرې به کړی تاسو | او رابه ولی | مخلوق | نوې | اونۀ دی | داکار | په الله باندې | څه ګران

نوتاسو به فنا کړی | او بل نوې مخلوق به راولی | اوداکار په الله ﷻ باندې هيڅ ګران نۀ دی

**قوله تعالی:: اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ؕ**

**د کائناتو رنګې او بوئی خالق:-** الله ﷻ بيان فرمائی چه د قيامت د ورځې په بيا راپيداکولو زه قادر يم.کله چه مادزمکې اوآسمان پيدائش اوکړونود انسان پيدائش ماته څه ګران دې.دآسمان اوچتوالې فراخوالې اولوئ والې بيا په دې کښې ولاړ او تيريدونکی ستوری اودا زمکې غرونه څنګلو ونې او ځناور ټول هم الله ﷻ جوړ کړی اود هغوی د پيداکولو نه عاجز رانغلو، هغه به د مړو دوباره ژوندی کولو باندې قادر نه وی، بې شکه قادر دې. په سورة يس کښې اوفرمائيل چه آيا انسان اونه ليدل چه مونږ هغه د نطفه نه پيدا کړو بيا هغه جنګ کونکې جوړ شو. زمونږ په وړاندې مثالونه بيان کړل خپل پيدائش ترې هير شو او وئې وئيل چه داسخاشوی هډوکی به څوك راژوندی کړی؟ اووايه چه هم هغه الله ﷻ چا چه په اول ځل پيدا کړي هغه د هر څيز پيدا کول ښه پيژنی. هغه د شنې ونې نه ستاسو د پاره أور جوړ کړو کوم چه تاسو بلونی. آيا د زمکې او آسمانونو خالق د دې په شان پيدا کولو باندې قادر نه دې؟بې شکه دې. هم هغه لوئ خالق او لوئ علم والا دې د هغه د ارادې نه پس صرف دومره حکم بس دې چه "شه" هم هغه وخت هغه کيږی. الله ﷻ پاك دې د چا په لاس کښې چه د هرڅيز بادشاهت دې اود چا طرف ته چه ستاسو د ټولو واپس کيدل دی. د هغه په قبضه کښې دی چه اوغواړی نو تاسو ټول

به فنا کړي او ستاسو په ځای به نوې مخلوق دلته آباد کړي. په هغه باندې دا کار هم ګران نه دې. که تاسو د دې امرخلاف کوئی نو هم دغه به کیږي. لکه څنګه چه فرمانیلې شوی دی چه که تاسو مخ واړولو نو الله ﷻ به ستاسو په ځای یو داسې قوم راولي چه ستاسو په شان به نه وي. او په آیت کښې دی اې د ایمان خاوندانو! په تاسو کښې چه څوک د خپل دین نه واوړي نو الله ﷻ به یو داسې قوم راولي چه د هغه به خوښ وي اودهغه سره به محبت ساتونکې وي. په یو بل ځای کښې دی که هغه غواړي نو تاسو به برباد کړي او بل قوم به راولي. الله ﷻ په دې قادر دې.

| وَبَرَزُوا | لِلَّذِينَ | الضُّعَفَاءُ | فَقَالَ | جَمِيعًا | لِلَّهِ |
|---|---|---|---|---|---|
| او بې پردې به شي داخلق \| الله ته \| ټول \| نو اوبه وائي \| کمزوري خلق \| هغه کسانو ته | | | | | |
| او دوئ ټول به الله ﷻ ته مخامخ کیږي \| نو (ددې دنیا) کمزوری خلق به (ددې دنیا) | | | | | |
| اسْتَكْبَرُوا | إِنَّا كُنَّا | لَكُمْ | تَبَعًا | فَهَلْ | أَنتُم مُّغْنُونَ |
| چې خان نې لوئ ګڼړلې وو \| بیشکه وو مونږ \| دپاره ستاسو \| تابع \| نو آیا \| تاسو لرې کولې شئ | | | | | |
| غټانو نه تپوس اوکړي \| چې مونږ خو ستاسو (دحکمونو) تابعدار وو \| نو آیا تاسو زمونږ نه د الله ﷻ | | | | | |
| عَنَّا | مِنْ عَذَابِ اللَّهِ | مِن شَيْءٍ | قَالُوا | لَوْ | هَدَانَا اللَّهُ |
| زمونږ نه \| عذاب د الله \| څه قدري \| اوبه وائي هغوئ \| که چرې \| لاربنودلې وې مونږ ته الله (دنجات) | | | | | |
| په عذاب کښې څه لږ شان کمولې شئ \| هغوئ به اووائي که الله ﷻ مونږ ته هدایت کړې وې | | | | | |
| لَهَدَيْنَاكُمْ | سَوَاءٌ | عَلَيْنَا | أَجَزِعْنَا | | |
| نو مونږ به ضرور ښودلې وې تاسو ته \| اوس خو برابره خبره ده \| په حق زمونږ کښې \| که فریاد کوؤ مونږ | | | | | |
| نو مونږ به تاسو ته هدایت کړې وې \| .........اوس زمونږ ټولو د پاره یو شان خبره ده\| که چغې وهو | | | | | |
| أَمْ صَبَرْنَا | مَا لَنَا | مِن مَّحِيصٍ ۝ | | | |
| یا صبر کوؤ مونږ \| نشته دې مونږ د پاره\| هیڅ ځاني دخلاصی \| | | | | | |
| اوکه صبر کوو ازمونږ خلاصې په هیڅ صورت کښې نشته \| | | | | | |

**قوله تعالیٰ:: وَبَرَزُوا لِلَّهِ جَمِيعًا**

**په محشر کښې د تابعانو او متبوعانو خبرې اترې:** په صفا او کولاؤ میدان کښې به ټول مخلوق نیك او بدد الله ﷻ په وړاندې به موجود وي. هغه وخت چه کوم خلق ماتحت وو هغوی به هغه خلقو ته اووائی چه کوم سرداران وو او چه هغوی به نی د الله ﷻ د عبادت اود رسول ﷺ تابعدارنی نه منع کول چه مونږ خو ستاسو د حکم تابعدارو و تاسو چه به کوم حکم کولو مونږ به هغه په ځای راوړلو څه چه به تاسو وئیل مونږ به منل. نو لکه څنګه چه به تاسو مونږ سره وعدې کولې او مونږ ته به موارزوګانې راکولې نو آیا نن به هم زمونږ نه د الله ﷻ عذاب اخواکوئی؟ هغه وخت به دا سرداران او مشران وائی چه مونږ خو پخپله په نیغه لار نه وو نو ستاسو مشری به موڅنګه کوله؟ په مونږ باندې د الله ﷻ کلمې وړاندیوالې اوکړومونږ ټول د عذاب حقدار شو اوس به نه چغې سورې او نه بې آرامی ګټه ورکولې شی او نه صبر اوزغمل. د عذاب نه د بچ کیدو هیڅ صورت نشته.

**د دوزخیانو زارئ او فریاد::** حضرت عبدالرحمن بن زید رحمه الله فرمائي چه دوزخیان به وائي چه ګورئ دې مسلمانانو به دالله ﷻ وړاندې ژړا فریاد کولو په دې وجه هغوی جنت ته اورسیدل. راځئ چه مونږ هم د الله ﷻ په مخکښې اوژاړو او فریادونه اوکړو. بیا به ژړای خانونه به وهي او چغې به وهي خوولې بې کاره. نو بیا به وائي چه د جنتیانو جنت ته د تلو یوه وجه دا هم وه چه صبر به نې کولو راځئ چه مونږ هم چپوالي او صبر اختیار کړو.نوداسې صبر به کوی چه داسې صبر به چا نه وی لیدلې خو په دې سره به هم څه حاصل نه شي. هغه وخت به وائي چه افسوس صبر هم بې فائدې او بې آرامي هم بې ګټې. بنکاره خبره خو دا ده چه د مشرانو او تابعدارانو په مینځ کښې به داخبرې اترې به دوزخ ته د تلو نه پس وی لکه چه آیت ﴿وَإِذْ يَتَحَاجُّونَ فِي النَّارِ فَيَقُولُ الضُّعَفَاءُ لِلَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا إِنَّا كُنَّا لَكُمْ تَبَعًا فَهَلْ أَنْتُمْ مُغْنُونَ عَنَّا نَصِيبًا مِنَ النَّارِ﴾ هغوی به په دوزخ کښې جنګ کوی، هغه وخت به کمزوری خلق زوراورو ته وائي چه مونږ خو ستاسو ماتحت وونو آیا تاسو به مونږ له د اور د څه حصې نه خلاصې راکړئ؟ هغه کبرژن خلق به وائي چه مونږ خو ټول په دوزخ کښې یو. د الله ﷻ فیصلې دبندیې ګانو پاره کښې شوی دی او په آیت کښې دی ﴿قَالَ ادْخُلُوا فِي أُمَمٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِكُمْ مِنَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ فِي النَّارِ ۖ كُلَّمَا دَخَلَتْ أُمَّةٌ لَعَنَتْ أُخْتَهَا ۖ حَتَّىٰ إِذَا ادَّارَكُوا فِيهَا جَمِيعًا قَالَتْ أُخْرَاهُمْ لِأُولَاهُمْ رَبَّنَا هَٰؤُلَاءِ أَضَلُّونَا فَآتِهِمْ عَذَابًا ضِعْفًا مِنَ النَّارِ ۖ قَالَ لِكُلٍّ ضِعْفٌ وَلَٰكِنْ لَا تَعْلَمُونَ﴾ فرمائي به چه څنې او په هغه خلقو کښې شامل شئ نواولنی به دروستنویاره کښې دالله ﷻ په حضور کښې عرض اوکړی پروردګاره دې خلقو خو مونږ دهوکه کړې یو دوی ته ډبل عذاب ورکړه. جواب به ملاؤ شي چه هر یو د پاره ډبل دې خو تاسو نه پوهیږئ. او وړاندینی به روستنوته وائي چه ستاسو په مونږ باندې هیڅ غوره والي نه وو د خپلوکولې شوی عملونو عذاب مزه اوڅکئ اوبه آیت کښې دی چه هغوی به وائي ﴿رَبَّنَا إِنَّا أَطَعْنَا سَادَتَنَا وَكُبَرَاءَنَا﴾ اې زمونږ پروردګاره مونږ د خپلو مشرانو تابعداری کړې چا چه مونږ د لارې نه واړولو. اې زمونږ پالونکیه دوی ته ډبل عذاب ورکړه او په دوی لوئ لعنت اوکړه. دا خلق به په محشر کښې هم جنګونه کوی. ارشاد باری تعالی دې[إِذِ الظَّالِمُونَ مَوْقُوفُونَ عِنْدَ رَبِّهِمْ] فسوس چه تا لیدل کله چه ظالمان خلق د الله ﷻ په وړاندې اودریدل او یو بل سره جنګیږی. تابعدار خلق به خپلو مشرانوته وائي که چرې تاسو نه وئ نو مونږ خو به ایماندار جوړشوی وو نو دامشران به د. کشرانو ته وائي چه آیا د هدایت راتلونه پس مونږ تاسو د هغې نه منع کړی وئ؟ نه بلکه تاسو خو پخپله ګناهګار او بدکار وئ. دا کمزوری خلق به بیا دې زوراورو ته وائي چه ستاسو د شپې ورځې دا چلونه او مونږ ته داحکم راکول چه مونږ د الله ﷻ نه انکار اوکړو اود هغه د پاره شریکان جوړکړو. اوس به ټول خلق په خپل خپل خایئ ملامته شي او عذابونه به مخامخ اووینی. مونږ به د کافرانو په ستونو کښې طوق واچوو او هغوی ته به د هغوی د عملونو بدله خامخا ملاویږی.

| | | |
|---|---|---|
| لَمَّا | الشَّيْطٰنُ | وَقَالَ |
| هرکله چې | شیطان | او اوبه وائي |

او کله چې فیصله اوشي نوشیطان به

| وَعْدَ الْحَقِّ | وَعَدَكُمْ | إِنَّ اللّٰهَ | الْأَمْرُ | قُضِيَ |
|---|---|---|---|---|
| وعده د حق | وعده کړې وه تاسو سره | بیشکه الله | کار | فیصله کړې شي |

اووائي چې بیشکه الله ﷻ تاسوسره رښتینې وعده کړې وه ..................

وَوَعَدْتُّكُمْ فَأَخْلَفْتُكُمْ ؕ وَمَا كَانَ لِيَ عَلَيْكُمْ

او وعده کړې وه ما تاسو سره | نو ما خلاف اوکړو ستاسو | او نهٔ وه | زما د پاره | په تاسو باندې

اوما هم درسره وعده کړې وه | نو ما درسره د وعدې خلاف اوکړو | او زما په تاسو څه زور خو

مِّنْ سُلْطٰنٍ اِلَّآ اَنْ دَعَوْتُكُمْ فَاسْتَجَبْتُمْ لِيْ ۚ

هيڅ غلبه | مګر دومره قدرې | چې اوبللې ما تاسو | نو قبوله کړه تاسو | بلنه زما

نهٔ چليدهٔ | صرف دومره ده چې ما تاسو ته بلنه اوکړه (چې ګناهونه اوکړئ) | او تاسو زما خبره اومنله

فَلَا تَلُوْمُوْنِيْ وَلُوْمُوْٓا اَنْفُسَكُمْ ؕ مَآ اَنَا بِمُصْرِخِكُمْ

نو مهٔ ملامته کوئ تاسو ما | او ملامته کړئ | خانونه خپل | نهٔ يم زهٔ | فرياد اوريدونکې ستاسو

نو اوس ما مهٔ ملامته کوئ | بلکه خپل خانونه په خپله ملامته کړئ | نهٔ زهٔ ستاسو فرياد اوريدلې شم

وَمَآ اَنْتُمْ بِمُصْرِخِيَّ ؕ اِنِّيْ كَفَرْتُ بِمَآ اَشْرَكْتُمُوْنِ

او نهٔ يئ تاسو | فرياد اوريدونکې زما | بيشکه زهٔ | انکارى يم | د هغې نه | چې شريک کړې وو تاسو ما لره

او نهٔ تاسو زما فرياد اوريدلې شئ | زهٔ خپله د هغې خبرې نه ويزاره يم | چې تاسو به زهٔ د الله ﷻ سره

مِنْ قَبْلُ ؕ اِنَّ الظّٰلِمِيْنَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۲۲﴾ وَاُدْخِلَ

مخکښې ددې نه | بيشکه ظالمان چې دى | دې د هغوئ د پاره | عذاب | درد ناک | او داخل به کړې شى

شريک ګرزلم | بيشکه داسې ظالمانو د پاره دردناک عذاب تيار دې | | و چاچې ايمان راوړى دې

الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ

هغه کسان | چې ايمان ئې راوړو | او عملونه ئې اوکړل نيک | داسې باغونو ته | چې بهيږى به

او نيک کارونه ئې کړى دى | هغوئ به داسې باغونو ته داخلولې شى | چې د هغې لاندې

مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا بِاِذْنِ رَبِّهِمْ ؕ

لاندې د(اونو) د هغې نه | نهرونه | هميشه به وى | په هغې کښې | په حکم د رب خپل

به نهرونه بهيږى | ..........................د خپل رب په حکم به هغوئ په دې کښې هميشه وى

تَحِيَّتُهُمْ فِيْهَا سَلٰمٌ ﴿۲۳﴾

د ملاقات دعا د هغوئ به | په هغې کښې | سلام وى |

اوهلته به دهغوئ دملاقات دعا سلام وى |

قوله تعالى:: وَقَالَ الشَّيْطٰنُ لَمَّا قُضِيَ الْاَمْرُ

**په دوزخ کښې دشيطان خطاب**.- الله ﷻ چه کله دبنديګانو دقضانه اوزګارشى.مؤمنان جنت ته او کافران دوزخ ته اورسى هغه وخت به ابليس ملعون په دوزخ کښې اودريږى هغوى ته به وانى چه د الله ﷻ وعدې رښتونې او په حقه وې.هم د رسولانو په تابعدارنى کښې خلاصې او سلامتى وه. زما وعدې خو دهوکه وه. ما خو به تاسو په غلطه لار اچولو د پاره تاسو ته شنه باغونه خودل. زما خبرې بې دليله وې اوزما خبرې بې حجته وې. زما په تاسو باندې هيڅ زور او غلبه نه وه. تاسو به هسې زما په يو آواز

رامنډې وهلې.ما اوونيل او تاسو اومنل.درسولانو ربښتوني وعدې د هغوی د دليل نه ډك اواز اود هغوی د كامل حجت دليلونه تاسو پريخودل د هغې خلاف او زما تابعداری مو اوکړه د څه نتيجه چه نن تاسو په خپلو سترګو وينئ. دا ستاسو د خپلو کړو بدله ده. ما ملامته کوئ مه بلکه خپل نفس ته الزام ورکړئ. ګناه ستاسو خپله ده تاسو دليلونه پريخودل تاسو زما خبرې اومنلې خو نن به زه ستاسو په هيڅ کار رانه شم. نه به تاسو بچ کړې شم او نه به تاسو ته څه نفع دراورسوم. زه خو ستاسو د شرك په وجه ستاسو منکر يم. زه صفا وايم چه د الله ﷻ سره شريك نه يم لکه چه د الله ﷻ ارشاد دې ﴿ وَمَنْ أَضَلُّ مِمَّنْ يَدْعُوا مِنْ دُونِ اللَّهِ مَنْ لَا يَسْتَجِيبُ لَهُ ﴾دې نه لوئ ګمراه څوك دې؟ څوك چه د الله ﷻ نه سوا نور رابلي چه د قيامته پورې به د دوی رابلل قبول نه کړې شي.بلکه د هغوی د رابللو نه به صرف غافل وی اود محشر په ورځ د هغوی دښمنان اودهغوی د عبادتونو منکران جوړشي.اوبه آيت کښې دی ﴿كَلَّا سَيَكْفُرُونَ بِعِبَادَتِهِمْ وَيَكُونُونَ عَلَيْهِمْ ضِدًّا﴾يقيناًهغه خلق به ددوی د عبادتونومنکر جوړشي اود هغوی دښمنان به جوړشي. دا ظالمان خلق دی څکه چه د حق نه ئې مخ واړولو اود باطل منونکي جوړ شو د داسې ظالمانودپاره دردناك عذاب دې. نو ښکاره خبره ده چه د ابليس دا خبرې دوزخيانو سره به دوزخ کښې د داخليدو نه پس به وی دې د پاره چه هغوی په حسرت ارمان او افسوس کښې نور هم زيات شي. خو د ابن ابی حاتم يو حديث شريف کښې دی چه حضورﷺ فرمائی کله چه وړاندينی او روستونی الله ﷻ راجمع کړی او په هغوی کښې فيصلې اوکړی نو د فيصلو په وخت کښې به عامه ويره وی. مؤمنان به وائی چه په مونږ کښې فيصلې کيږی اوس به زمونږ د سفارش د پاره څوك اودريږی؟ حضرت عيسیؑ حضرت آدمؑ حضرت نوحؑ حضرت ابراهيمؑ حضرت موسیؑ به حضرت عيسیؑ له لاړشي حضرت عيسیؑ به فرمائی نبی امیﷺ له ورشئ نو هغوی به ماله راشی، ماته به الله ﷻ د اودريدلو اجازت راکړی. هغه وخت به زما د مجلس نه ښکلې او مزيداره خوشبو خوره شي چه دې نه وړاندې به داسې خوشبو چا نه وی راښکلې. زه به روان شم او رب العالمين له به لاړشم. زما د سر د ويښتونه واخله تر د پښو د ګوتوپورې بدن به ټول نورانی شی اوس به زه سفارش کوم او الله ﷻ حق تبارك وتعالی به ئې قبلوی. د دې په کتلو به کافران خلق وائی چه راځئ مونږ هم چرته څوك سفارشی راولو. اود دې د پاره د ابليس نه بغير مونږ سره څوك دی؟ هغه مونږ دهوکه کړې وو ځئ چه هغه له ورشو. رابه شي او ابليس ته به وائی چه مؤمنانو خو سفارش بيامونډ او ته زمونږ د پاره شفاعت کونکې جوړشه څکه چه مونږ خو ګمراه کړې هم تا يو د دې اوريدو سره به دا ملعون اودريږی دهغه د مجلس نه به داسې ګنده بوئی خورشی چه دې نه وړاندې به يوې پوزې ته داسې خراب بوئی نه وی رسيدلې بيا به هغه وائی د هغه بيان په دې آيت کښې دې.(١)محمد بن کعب قرظی رحمه الله فرمائی چه کله دوزخيان خپل صبر او بې صبری يو شان بيان کړی هغه وخت به ملعون هغوی ته دا وائی هغه وخت به هغوی د خپلو ځانونو هم ويزاره وی. آواز به اوشي چه ستاسو د دې وخت د ويزارئ نه هم ډيره ويزاری د الله ﷻ د طرف نه تاسو نه هغه وخت وه چه کوم وخت به تاسو د ايمان طرف ته رابللې کيدئ او تاسو به انکار کولو.

**قيامت کښې د دوو کسانو خطاب:** عامر شعبی رحمه الله فرمائی د ټولو خلقو په وړاندې به هغه ورځ دوه کسان خطبه ورکولو د پاره اودريږی. حضرت عيسی بن مريمؑ ته به الله ﷻ اوفرمائی چه آيا تا خلقو ته وئيلې ووچه تاسو الله ﷻ نه سوا ما او زمامورخپل معبودان جوړکړئ.داآياتونو﴿هَٰذَا يَوْمُ يَنْفَعُ الصَّادِقِينَ﴾ پورې هم په دې بيان کښې دی. او ابليس به اودريږی او وائی به ﴿وَمَا كَانَ لِيَ عَلَيْكُمْ مِنْ سُلْطَانٍ﴾ دخرابو خلقو انجام اود هغوی د درد اوغم اود ابليس د جواب ذکر کولو سره اوس د نيکانو خلقو انجام بيانولې شي

(١) مجمع الزوائد: ١٠/٣٧٩، التقريب: ١/٤٨٠.

چه ایماندار د نیکو عملونو والا خلق به جنتونو ته خي. چرته چه زره غواړي خي دې راخي دې ګرځي راګرځي او خوري او څکي دې. د همیشه د پاره دې هم دلته اوسیږي پاتې شوې آرزوګانې، نه به نې زړه مړیږي، نه به نې طبیعت خرابیږي، نه به مره کولې شي او نه به راویستلې شي او نه به نعمتونه کم وي. هلته به هغوی تحفه هم سلام او سلام وي لکه چه ارشاد دې ﴿حَتّٰۤى اِذَا جَآءُوْهَا وَفُتِحَتْ اَبْوَابُهَا﴾ یعني چه کله جنتیان جنت ته لاړشي نود هغې دروازې به د هغوی د پاره کولاوولې شي اود هغه ځاې څوکیدار به هغوی ته سلام علیك واني الخ. او په آیت کښې دي چه د هرې دروازې نه به هغوی سره فرښتې راخي او سلام علیکم به واني او په آیت کښې دي چه هلته به تحیة اوسلام اوروولې شي.او په یو بل آیت کښې دي ﴿دَعْوٰىهُمْ فِیْهَا سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَتَحِیَّتُهُمْ فِیْهَا سَلٰمٌ﴾ دهغوی آوازکول به هلته دالله ﷻ پاکي بیانول وي اود هغوی تحفه به هلته سلام وي اود هغوی آواز به د الله ﷻ رب العزت حمد وي.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اَلَمْ تَرَ | کَیْفَ | ضَرَبَ اللّٰهُ | | | | |
| آیا ته نه ګورې | چي څرنګې | بیان کړو الله | | | | |
| آیا ته نه ګورې چي الله ﷻ څنګه د پاکې | | | | | | |
| مَثَلًا | کَلِمَةً | طَیِّبَةً | کَشَجَرَةٍ | طَیِّبَةٍ | اَصْلُهَا | ثَابِتٌ |
| مثال | د کلمې | پاکې | پشان د ونې | پاکې | چي بیخ (جرړې) د هغې | محکم وي |
| کلمې مثال بیان کړې دې | چي هغه د یوې پاکې ونې په شان ده | د هغې جرړې (په زمکه کښې) | | | | |
| وَّفَرْعُهَا | فِی السَّمَآءِ | تُؤْتِیْۤ | اُکُلَهَا | کُلَّ حِیْنٍۭ | بِاِذْنِ | |
| او څانګې د هغې | په آسمان کښې وي | ورکوي | میوه خپله | هروخت | په حکم | |
| مضبوطې او ښاخ نې په آسمان کښې دې | هغه د خپل رب په حکم سره په هر فصل کښې خپله میوه | | | | | |
| رَبِّهَا | وَیَضْرِبُ اللّٰهُ | الْاَمْثَالَ | لِلنَّاسِ | لَعَلَّهُمْ | یَتَذَکَّرُوْنَ | |
| درب خپل | او بیانوي الله | دا مثالونه | د پاره د خلقو | د پاره د دې چي هغوی | نصیحت قبول کړي | |
| ورکوي | او الله ﷻ خلقو د پاره مثالونه څکه بیانوي | چي هغوی ترې نه سبق واخلي | | | | |
| وَمَثَلُ | کَلِمَةٍ | خَبِیْثَةٍ | کَشَجَرَةٍ | خَبِیْثَةِ | اجْتُثَّتْ | |
| او مثال | دکلمې | خبیثې (پلیتې) | پشان د ونې | خبیثې (بدذاتې) دې | چي ایستلې شوی وی | |
| اود یوې ناپاکې خبرې مثال د یوې ناپاکې ونې پشان دې | چې د زمکې دپاسه راوویستلې | | | | | |
| مِنْ فَوْقِ الْاَرْضِ | مَا لَهَا | مِنْ قَرَارٍ | | | | |
| د سر د زمکې نه | چي نه وی هغې د پاره اهیڅ قرارا | | | | | |
| شي | او د هغې هیڅ مضبوطیا نه وی | | | | | |

**قوله تعالی:: مَثَلًا کَلِمَةً طَیِّبَةً** حضرت ابن عباس ؓ فرماني دکلمه طیبه نه مراد ﴿لااله الاالله﴾ ګواهي ده. د **کلمه طیبه او شجره طیبه:** حضرت ابن عباس ؓ فرماني دکلمه طیبه نه مراد ﴿لااله الاالله﴾ ګواهي ده. د پاکې ونې په شان مؤمن دي اود هغه جرړه مضبوطه ده. یعنی د مؤمن په زړه کښې ﴿لااله الاالله﴾ کلکه شوې ده. د دې ښاخ په آسمان کښې دې.یعنی د دې دتوحید دکلمې په وجه د دې اعمال د آسمان طرف ته اوچتولې شي. د نورو ډیرو مفسرینونه هم دا مروی دی چه دې نه مراد د مؤمن اعمال دی اود ده پاك

اقوال او نيك كارونه. مؤمن د كهجورې دونې په شان دې هروخت هرسحر هر ماښام د هغه اعمال د آسمان طرف ته روان وی خیژی.

**دشجرة طيبة نه مراد دكهجورې ونه ده:**:رسول الله ﷺ له د كهجورو يوه غنچه راوړلې شوه نو هغوی ﷺ هم د دې آيت رومبنى حصه تلاوت كړه او ونی فرمائيل چه د پاكې ونې نه مراد هم د كهجورې ونه ده.([1]) په صحيح بخاری شريف كښې دی دحضرت عبدالله بن عمر ﷺ نه نقل دی چه مونږ حضورﷺ سره ناست وو چه هغوی اوفرمائيل ماته اوښائې هغه كومه ونه ده چه دمسلمان مشابه ده،د كومې پانړې چه نه رژيږی نه په يخنئى كښې نه په گرمئی كښې او خپله ميوه هر موسم كښې راوړی. حضرت عبدالله بن عمر ﷺ فرمائی چه زما په زړه كښې راغله چه اووايم چه هغه د كهجورې ونه ده خو ما اوكتل چه په مجلس كښې حضرت ابوبكر صديقﷺ دې حضرت عمرﷺ دې او هغوی چپ دی نو زه هم چپ شوم. حضورﷺ اوفرمائيل هغه د كهجورې ونه ده. كله چه د دې ځائ نه پاځيدو لاړو نو ما خپل پلار حضرت عمرﷺته دا ذكر اوكړو نو هغوی اوفرمائيل زما خوړه بچيه كه چرې تا دا جواب وركړې ونو دا به ماته د ټولو څيزونونه ډير گران وې.([2])حضرت مجاهد ﷺ قول دې چه زه د مدينې شريفې پورې حضرت ابن عمر ﷺ سره ووم خوحرف ديو حديث نه بل يو روايت هم هغه د رسول الله ﷺ نه روايت كونكې نه دې اوريدلې. په دې كښې دی چه دا سوال هغوی هغه وخت كښې كړې وو كله چه دهغوی په وړاندې د كهجورې دونې دتخم شيره راوړلې شوې وه.زه داسې چپ پاتې شوم چه زه په هغه مجلس كښې د ټولو نه كم عمر ووم.او په روايت كښې دی چه د جواب وركونكوخيال هغه وخت دځنگلي ونوطرف ته لاړو.

ابن ابی حاتم كښې دی چه چا رسول الله ﷺ ته عرض اوكړو چه حضورﷺ مالداران خلق به درجاتوكښې ډير وړاندې شو. حضور ﷺ اوفرمائيل ياد ساته كه چرې د ټولې دنيا څيزونه راجمع كړې شی نو هغه به هم آسمان ته اونه رسی. تاته داسې عمل اوښايم د كوم جرړې چه مضبوطې او ښاخونه ئې په آسمان كښې وی هغه تپوس اوكړوهغه څه دی؟ ونی فرمائيل (لااله الاالله والله اكبر وسبحان الله والحمد لله)دهر مانځه نه پس لس ځل وايه دكوم اصل چه مضبوط او دكوم ښاخونه چه په آسمان كښې دی. ابن عباس ﷺ فرمائی چه هغه پاكه ونه په جنت كښې ده او هر وخت خپلې ميوې وركوی. يعنی سحر ماښام هره مياشت كښې يا هرې دوه مياشتې پس ياهر شپږ مياشتو كښې يا هر اووه مياشتې پس ياهركال.خو د الفاظو ظاهری مطلب خو دا دې چه دمؤمن مثال د دغه ونې په شان دې دكومې ميوې چه په هرموسم كښې ژمی اوړی ورځ او شپه كښې وی. دغه شان د مؤمن اعمال شپه ورځ هر وخت خيژی د ده د رب په حكم يعنی كامل ښه او ډير مزيدار.الله ﷻ د خلقو د عبرت د پاره د هغوی د سوچ او فكر اود هغوی د نصيحت د پاره واضحه مثالونه بيانوی.

**كلمة خبيثة او شجرة خبيثة:**:بيا د خرابې كلمې يعنی كافر مثال بيان فرمائی چه كومو هيڅ اصل نه وی نه مضبوطې وی. دې مثال د "اندرانړ" د ونې په شان دې كوم ته چه حنظل او شيريان وائی([3]) (دا يوه ونه ده چه د دې ميوه په كتو كښې ډيره ښكلې وی خو په خوندكښې ډيره بې مزې اړ بې خونده وی) په يو موقوف روايت كښې د حضرت انس ﷺ نه هم راغلې دې او هم دغه روايت مرفوعا هم راغلې دې. د دې ونې جرړې د زمكې په بيخ كښې نه وی. معمولې ډيكې سره پريوځی. دغه شان كفر هم بې جرړې او بې ښاخه وی د كافر هيڅ نيك عمل پورته خيژی اونه مقبول وی.

---

[1]) ترمذی كتاب التفسير القرآن باب ومن سورة ابراهيم:۳۱۱۹وسنده صحيح.

[2]) صحيح بخاری كتاب التفسير باب قوله (كشجرة طيبة اصلها ثابت):٤٦۹۸، صحيح مسلم:۲۸۱۱.

[3]) ترمذی كتاب تفسير القرآن باب ومن سورة ابراهيم:۳۱۱۹وسنده صحيح.

| | | |
|---|---|---|
| يُثَبِّتُ اللَّهُ | الَّذِينَ | آمَنُوا |
| مضبوطوي الله | هغه كسان | چې ايمان ئې راوړو |
| ....الله ﷻ مومنان د دغې پخې خبرې (كلمې طيبې) | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ | فِي الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا | وَفِي الْآخِرَةِ | وَيُضِلُّ اللَّهُ | الظَّٰلِمِينَ | |
| په خبرې محكمې سره | په ژوند د دنيا كښې | او په آخرت كښې | اوگمراهه كوي الله | ظالمان | |
| په بركت د دنيا په ژوند كښې او په آخرت كښې هم ثابت قدم ساتى | او الله ﷻ ظالمان گمراه كوي | | | | |

| | | |
|---|---|---|
| وَيَفْعَلُ اللَّهُ | مَا | يَشَاءُ |
| او كوي الله | هغه كار | چې غواړي ئې هغهٔ |
| او الله ﷻ چې څه غواړي هغه كوي | | |

**قوله تعالى:: يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا**

**دقبرسوال جواب او عذاب اوثواب:** صحيح بخاري شريف كښې دي رسول الله ﷺ فرمائي چه د مسلمان نه كله د هغه په قبركښې سوال كيږي نو هغه گواهي وركوي چه د الله ﷻ نه سوا بل څوك د عبادت لائق نشته اومحمد ﷺ د الله رسول دې. هم دا مراد د دې آيت دې.[1]

**دمؤمن دروح وتلو كيفيت:** په مسندكښې روايت دې چه مونږ ديو انصاري په جنازه كښې حضور ﷺ سره وو. قبرستان ته چه اورسيدو، نو تراوسه پورې لا قبر تيار نه وو هغوی ﷺ كيناستل نو مونږ هم دهغوی نه چاپيره داسې كيناستو لكه چه زمونږ په سرونو مرغئي وی. حضور ﷺ سره چه كوم ډكې وو په هغې باندې په زمكه كرخې ويستلې چه سرئې اوچت كړو دوه درې ځل ئې اوفرمائيل چه د قبر د عذاب نه پناه غواړئ. بنده چه كله د دنيا په آخري وخت كښې اود آخرت په ړومبی وخت كښې وی نو هغه له د آسمان نه دنوراني مخونو فرښتې راځي لكه چه دهغوی مخونه دنمر په شان وی. هغوی سره جنتي كفن او جنتي خوشبو وی. هغه سره د هغه ځائ پورې كيني چرته چه د ده نظر رسی. بيا د مرگ فرښته راشي اود هغه سر سره كيني اوفرمائي اې پاكه روحه د الله ﷻ دمغفرت او دهغه درضا طرف ته روان شه. هغه دومره په آسانئي سره راوځي لكه چه د مشك نه د اوبوڅاڅكي راوځي. د يوې سترگې د رپ برابر وخت د پاره هم هغه فرښتې د هغه په لاس كښې نه پريږدی ډير زر ئې ترې واخلي او په جنتي كفن او جنتي خوشبوكښې ساتي. پخپله د دې روح نه هم د مشكونه ډير ښكلې بوئي راوځي چه په مخ د زمكې به داسې خوشبوئي چا نه وی بوئ كړې. هغوی دا واخلي او د آسمان طرف ته ئې اوړي. د فرښتو د كومې ډلې خواكې چه تيريږي هغوی وائي چه دا پاك روح د چا دې دوی چه د ده كوم ښائسته نوم دنيا كښې مشهوروی ورته ئې ښائي او د هغه د پلار نوم هم. د دنيا آسمان ته په رسيدو باندې دروازې كولاويږي. د آسمان دروازه كولاويږي اود هغه ځائ فرښتې دوئم آسمان پورې او د دوئم آسمان فرښتې درئم آسمان پورې .

دغه شان تر اووم آسمان پورې رسی. الله ﷻ فرمائي زمادبنده كتاب عليين كښې اوليكئ اودې زمكې طرف ته واپس كړئ.دې ما هم دې نه پيدا كړې او هم د دې نه به ئې واپس راوباسم. بيا د هغه روح هم دهغه بدن ته واپس كولې شي. ده له دوه فرښتې راځي هغه كينوی اوسوال كوي چه ستا رب

---

[1] صحيح بخارى كتاب التفسير باب (يثبت الله الذين امنوا بالقول الثابت):۴۶۹۹، صحيح مسلم:۲۸۷۱،ابوداؤد:۴۷۵۰، ترمذى:۳۱۲۰، معنًا عبدالرزاق:۲۷۳۷.

څوك دي؟هغه جواب وركوى الله ﷻ. هغوى بيا تپوس كوى چه ستا دين كوم يو دې هغه جواب وركوى اسلام. بيا سوال كولې شى هغه سړې څوك دې چه تاسو ته ليږلې شوې وو؟ هغه به وائى رسول الله ﷺ دې. فرښتې به تپوس كوى تاته څنګه معلومه ده؟ هغه به وائى ما كتاب الله لوستلې وو په ده مې ايمان راوړې وو اوربنتيا مې منلې وو.هغه وخت د آسمان نه يو آواز كونكې آواز كوى چه زما بنده رښتونې دې د ده د پاره جنتى فرش خور كړئى او جنتى جامې ورواغوندوئى اود جنت طرف ته ورته دروازه كولاؤ كړئى. نو د جنت روح خوشحالونكې خوشبوداره هوا به ده ته راځى. دهغه قبر به په اندازه د ده د نظر كولاؤ كړې شى.هغه له به يو ښائسته نورانى مخ والا ښكلې كپړو والا او ښه خوشبوئى لګولې شوې راشى ده ته به وائى ته خوشحاله شه، هم د دې ورځې وعده تاسره كولې شوه. ده نه به تپوس كوى ته څوك ئې؟ستا د مخ نه خو هم ښيګړه په نظر راځى. هغه به جواب وركوى چه زه ستا نيك عمل يم. هغه وخت مسلمان آرزو كوى چه ياالله قيامت زر راولې چه زه د خپل اهل عيال ملك او مال طرف ته واپس شم.

**دكافر د روح وتلو كيفيت:** :اوكافر سړې چه كله د دنيا آخرى وخت او د آخرت د شروع په وخت كښې وى هغه له دتورو مخونووالا آسمانى فرښتې راځى اوهغوى سره دوزخى ټاټ (بوجئى)وى تركوم ځائ پورې چه د ده نظر رسى هغه ځائ پورې كينى.بيا ملك الموت ﷺ راځى او د ده سر ته كينى او فرمائى اې خبيث روحه د الله ﷻ د غضب او غصې طرف ته رازوان شه. دهغه روح به بدن كښې پټيږى ګرځى كوم چه ډيره په سختئى سره راويستې شى.هم هغه وخت دستركې په رپ كښې فرښتې دهغه دلاس نه واخلى او هغه د دوزخ په بورې كښې رانغاړى. دې نه داسې بوئ ځى چه په مخ د زمكې دې نه خراب بوئ چا نه وى بوئ كړې. اوس دوى دا واخلى او پورته ئې خيژوى د فرښتو د كومې ډلې سره چه تيريږى هغوى تپوس كوى دا خبيث روح د چا دې.هغوى د ده چه په دنياكښې كوم خراب نوم وى ښائى اود ده د پلار نوم هم. د دنيا آسمان ته په رسيدو باندې دروازه كولاوول غواړى خو نه كولاويږى. بيا رسول الله ﷺ آيت﴿لَا تُفَتَّحُ لَهُمْ أَبْوَابُ السَّمَاءِ وَلَا يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ حَتَّىٰ يَلِجَ الْجَمَلُ فِي سَمِّ الْخِيَاطِ ۚ وَكَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُجْرِمِينَ﴾تلاوت كړو چه نه د هغه د پاره د آسمان دروازې كولاؤ شوې نه هغه جنت ته لاړ شو تر دې پورې لكه چه د ستنې دسوم نه اوښ تيرشى. الله ﷻ حكم فرمائى د ده كتاب په سجين كښې اوليكئى چه د ټولو نه لاندې زمكه كښې دې نو د هغه روح هم دهغه ځائ نه ورغورزولې شى.بيا حضور ﷺ آيت﴿وَمَنْ يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَكَأَنَّمَا خَرَّ مِنَ السَّمَاءِ فَتَخْطَفُهُ الطَّيْرُ أَوْ تَهْوِي بِهِ الرِّيحُ فِي مَكَانٍ سَحِيقٍ﴾تلاوت كړو. يعنى الله ﷻ سره چه څوك شرك اوكړى نو لكه چه هغه دآسمان نه راپريوتلويا هغه مرغئى اوچت كړى يا ئې چرته هوا لرې كنده كښې اوغورزوى. بيا د هغه روح هم د هغه بدن ته واپس كړى. هغه له دوه فرښتې راشى چه راؤچت ئې كړى او تپوس كوى چه ستا رب څوك دې؟ هغه به هائې هائې سره جواب وركوى چه ماته پته نشته. بيابه تپوس كولې شى ستا دين كوم يو دې؟ هغه به بيا هائې هائې سره جواب وركوى چه ماته دا هم پته نشته. بيا به تپوس كوى چه هغه څوك وو چه تاسوله درليږلې شوې وو؟ هغه به هائې هائې كولوسره وائى چه ماته پته نشته. هم هغه وخت د آسمان نه يو آواز كونكې آواز كوى زما بنده دروغژن دې ده د پاره د دوزخ د أور فرش خوركړئى اود دوزخ د طرف نه ورته دروازه كولاؤكړئى. هلته نه به هغه له د دوزخ هوا او ګرموالې رسيږى. او دهغه قبر به په هغه دومره راتنګ كړې شى چه د ده پوښتئى به په يو بل كښې ورننوځى. ډير خراب او ويرونكې صورت والا خرابو خيرنو جاموكښې يو بدبوداره سړې ده له راشى اووائى به چه اوس په غمناك شه هم د دې ورځې به تا سره وعده كولې شوه. دې به تپوس كوى

ته ځوك ئې؟ ستا د مخ نه خو بدي ځاځي هغه به وائي چه زه ستا د بدوعملونو مجسم يم نودې به دعاكوي چه ياالله قيامت دې رانه شي[1] (ابوداؤد نسائي ابن ماجه وغيره)

په مسندكښې روايت دې چه د نيك بنده د روح د وتو په وخت كښې د آسمان او زمكې په مينځ كښې فرښتې اود آسمانونو فرښتې ټول په ده رحمت راليږي.اود آسمانونو دروازې دهغه د پاره كولاوولې شي د هرې دروازې د فرښتو دعاوي چه د ده پاك او نيك روح د هغوي په دروازه اوچيږوئي الخ اود بد سړي باره كښې دي چه د ده په قبركښې يوه ړنده او ګونګئي فرښته مقرر وي د چا په لاس كښې چه يو ګرځ وي كه هغې باندې يو لوئ غر اووهلې شي نو هغه به هم خاورې شي. هغه دې وهي دې خاورې شي الله ﷻ ئې بيا جوړكړي او چه ځنګه وي نو هغه شان شي،نوفرښته هغه بياپه ګرځ وهي دې داسې چغې وهي چه د انسانانو او پيريانونه علاوه باقي ټول مخلوق هغه اوري.[2] حضرت براء ﷺ فرمائي هم دې آيت نه د قبرد عذاب ثبوت كيږي.[3] حضرت عبدالله ﷺ هم ددې آيت په تفسيركښې فرمائي مراد د دې نه د قبر سوال جواب كښې مؤمن ته استقامت ملاويدل دي. مسند عبد بن حميد كښې دي حضورﷺ فرمائي كله چه بنده په قبركښې كيخودې شي او خلق ترې واپس شي اوس لا د هغوي د تګ او ځپلو آوازد هغه په غوږونوكښې وي چه دوه فرښتې هغه له رشي او هغه كينوي او تپوس ترې كوي چه د دې سړي باره كښې ته څه وائې؟ مؤمن جواب وركوي چه زما ګواهي ده چه هغه د الله ﷻ بنده او د هغه رسول دې نو ده ته وئيلې كيږي چه ګوره په جهنم كښې دا ستا ځائ وو ليكن اوس دا بدل كړې شو الله ﷻ تاله په جنت كښې دا ځائ دركړو. فرمائي چه ده ته دواړه ځايونه ښكاري. د حضرت قتاده رحمه الله فرمان دې چه د ده قبر اويا ګزه پلنولې شي او د قيامته پورې شينكي او آبادئي نه ډك وي. [4]

**ددې امت به په قبرونو كښې ازمیښت كولې شي::** مسند احمد كښې دي حضورﷺ فرمائي چه د دې امت ازميښت د هغوي په قبرونوكښې كيږي. په دې كښې دا هم دي چه مؤمن هغه وخت دا خواهش كوي چه ما پريږدئې زه ځپلو خلقو ته دا زيرې وركوم. هغوي وائي اودريږه. په دې كښې داهم دي چه منافق ته هم د هغه دواړه ځايونه خودلې شي. فرمائي چه هر سړې په كوم دين باندې مړ وي په هغې به اوچتولې شي. مؤمن په ځپل ايمان باندې او منافق په ځپل نفاق.د مسند احمد په روايت كښې دي چه كومه فرښته راځي د هغې په لاس كښې د اوسپنې ګرځ وي.مؤمن د الله ﷻ توحيداو معبوديت اود محمدﷺ عبديت او رسالت ګواهي وركوي. په دې كښې داهم دي چه په جنت كښې ځپل كور اووينې نو هغې ته تلل غواړي خو هغه ته وئيلې شي چه اوس هم دلته آرام اوكړه. د دې په آخر كښې دي چه صحابه كرامو ﷺ عرض اوكړو يارسول اللهﷺ! چه كله د يوې فرښتې په لاس كښې ګرځ اووينې نو حواس به ئې قائم وي نو هغويﷺ هم دا آيت اولوستلو چه د الله ﷻ د طرف نه به هغوي ته ثابت قدمي ملاويږي.[5]

**مؤمن ته به د روح وتلو په وخت كښې فرښتې پخير راغلې وائي::** حديث شريف كښې دي چه د روح وتلو په وخت كښې مؤمن ته وئيلې شي چه اې داطمينان والا روحه چه په پاك بدن كښې وې راوځه د

---

[1] احمد:٢٨٧/٤ابوداؤد كتاب السنة باب المسئلة فى القبر وعذاب القبر:٤٧٥٣، وهوحسن، نسائى:٢٠٠٢، مختصرًا ابن ماجة : ١٥٤٨، حاكم:٣٧/١.

[2] احمد:٢٩٥/٤وهوحسن بالشواهد.

[3] صحيح مسلم كتاب الجنة باب عرض مقعد الميت من الجنة والنار عليه واثبات عذاب القبر والتعوذمنه:٢٨٧١مرفوعًا

[4] صحيح بخارى كتاب الجنائز باب ماجاء فى عذاب القبر:١٣٧٤، صحيح مسلم: كتاب الجنة باب عرض مقعد الميت من الجنة والنار عليه واثبات عذاب القبر:٢٨٧٠، ابن حبان:٣١٢٠،السنن الكبرى:٢١٧٦، احمد:٢٣٣/٣،١٢٦،الايمان لابن منده :١٠٦٦

[5] احمد:٣/٣ ٤٠وسنده حسن، البزار: ٨٧٢،مجمع الزوائد:٤٧/٣ ٤٨٠

تعریفونو والا جوړشه اوخوشحاله شه. په راحت اوارام درحیم او کریم الله ﷻ په رحمت سره.په دې کښې دی چه د آسمان فرښتې ده ته په خیر راغلې وائی او هم دغه خوشخبری او زیرې اوروی. او په دې کښې دی چه د خراب انسان روح ته وئیلی شی چه اې خبیث روحه د خبیث بدن نه راوځه خراب جوړشه او تیارشه اود اور په شان اوبو څکلو دپاره اود وینو زووڅکلودپاره او ددې په شان دنورو بې شمیره عذابونو دپاره. په دې کښې دی چه د آسمان فرښتې د هغه د پاره دروازې نه کولاووی اووائی خرابئی او ملامتیاسره واپس شه ستا د پاره دروازه نه شی کولاویدلې. ([1]).

**د مؤمن روحګ دریښمو په کپړو کښې اوړی:**:او په روایت کښې دی چه آسمانی فرښتې د نیك روح د پاره وائی الله ﷺ دې په تا باندې رحمت اوکړی او په هغه بدن باندې هم چه کوم کښې ته وې. تر دې چه هغه الله ﷺ ته رسوی نود هغه ځائ نه ارشاد کیږی چه دې د آخری وخت پورې یوسئی. په دې کښې دی د کافر د روح د بدبوئی بیانولو سره حضور ﷺ خپل څادر مبارك په خپله پوزه مبارکه کیخودو. ([2])او په روایت کښې دی چه د رحمت فرښتې دمؤمن د روح د پاره جنتی سپین ریښم راوړی راځی د یو یو لاس نه دا روح اخستل غواړی. کله چه دا د مخکینو مؤمنانو روحونوسره ملاویږی نولکه چه یو نوې سړې د سفر نه راشی اود هغه د کور خلق خوشحالیږی دهغې نه زیات دا روحونه دې روح سره په ملاویدلو باندې خوشحالیږی اوتپوس کوی چه دفلانکی څه حال دې خویدې کښې بعضې وائی چه اوس لا سوال جواب مه کوئی لږ شان آرام ته ئې پریږدئی.دې خو اوس دغم نه راخلاص شوې دې خوهغه جواب ورکوی چه هغه خو مړ شوې تاسو ته نه دې رسیدلې. هغوی وائی چه پریږده د هغه ذکر هغه خپلې مور هاویه له تلې دې.

**د کافر روح زمکه کښې لاندې غورځولې کیږی** ::په روایت کښې دی چه کله د کافر روح د زمکې دروازې له راوستلې شی نودهغه ځائ څوکیدارې فرښتې دهغه دبد بوئې نه ویریږی([3])اوآخرهغه د ټولونه لاندې زمکې ته رسوی. حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ فرمائی دمؤمنانو روحونه"جابین"اوکافرانو روحونه "برهوت"نومې حضرموت قید خانه کښې جمع کولې شی د هغه قبر ډیر تنګ شی. ترمذی شریف کښې دی چه د مړی په قبر کښې کیخودونه پس هغه له دوه تورشکلوګکو سترګو والا فرښتې راځی یو منکر او بل نکیر. د ده جواب اوریدوسره وائی چه مونږ ته علم ووچه ته به هم داسې جواب ورکوې. بیا د هغه قبر کولاوولې شی او نورانی کولې شی او وائی چه اوده شه. دې وائی چه زه خود خپل کور خلقو ته وایم خو دا دواړه به ورته وائی چه ته د ناوې په شان بې فکره خوب اوده شه هغه ناوې چه د هغه د کور د خلقو نه چه هغه ته دټولونه زیاته ګرانه وی هغه راپاڅوی او تردې پورې چه الله ﷺ به هغه ددې خوب ځائ نه راپاڅوی.

**په قبر کښې د منافق جواب**::منافق به جواب کښې وائی چه خلقو به څه وئیل ما به هم څه وئیل خو پوهیدلم نه. هغوی به وائی چه مونږ ته خو پته وه چه ستابه هم دا جواب وی.هم هغه وخت به زمکې ته حکم کولې شی چه راغونډه شه،هغه به راغونډیږی تر دې چه د هغه به یوه پوښتئی بله کښې ننوځې. بیا به هغه ته عذاب ورکولې شی تر دې چه الله ﷺ کله قیامت قائم کړی اوهغه د قبرنه راوچت کړی.([4]) او په حدیث کښې دی چه دمؤمن په جواب کښې به وائی چه ته خو هم په دې ژوندې وې او هم په دې مړ شوې ئې او هم په دې باندې به ته اوچتولې شې.

---

[1]) ابن ماجه کتاب الزهد، باب ذکر الموت والاستعداد له: ۴۲۶۲،۴۲۶۸، وسنده حسن، احمد:۱۴۰/۲، السنن الکبری:۱۱۴۴۲
[2]) صحیح مسلم کتاب الجنة باب عرض مقعدالمیت من الجنة والنار:۲۸۷۲.
[3]) نسائی کتاب الجنائز باب مایلقی به المؤمن من الکرامة عند خروج نفسه:۱۸۳۴وهوصحیح، حاکم:۳۵۳/۱، ابن حبان:۳۰۱۴.
[4]) ترمذی کتاب الجنائز باب ماجاء فی عذاب القبر:۱۰۷۱، وسنده حسن، ابن حبان:۳۱۱۷.

**په قبر کښې مونځ روژې زکوة وغیره هم د انسان حفاظت کوی:**:په ابن جریرکښې د رسول الله ﷺ ارشاد دې د هغه قسم دچا په لاس کښې چه زما خان دې چه مړی ستاسو دخپلو آوازونه اوری کله چه تاسو هغه ښخ کړنې او واپس کیږئی.که هغه په ایمان باندې مړ وی نو مونځ دهغه سر ته وی زکوة ښی طرف ته وی روژې گس طرف ته وی نیکئی مثلاً صدقه خیرات صله رحمی ښیگړه خلقو سره احسان وغیره د ده د پښوطرف ته وی. کله چه د ده د سر طرف نه څوك راځی نومونځ وائی دې ځایٔ نه دتلو ځایٔ نشته، د ښی طرف نه نی زکوة منع کوی د گس طرف نه نی روژې او د پښو د طرف نه نورې نیکئی. نو ده ته وئیلې شی چه کینه نو دې کینی اوهغه ته داسې معلومیږی لکه چه نمر ډوبیدو ته نزدې دې هغوی وائی چه گوره کوم تپوس مونږ کوو دهغې جواب راکوه هغه وائی چه تاسو پریږدئی اول زه مونځ کوم هغوی به وائی چه هغه خو به ته کوې اوس مونږ له زمونږ د سوالونو جواب راکړه. هغه به وائی چه ښه ده تاسوڅه وائې؟ هغوی به وائی چه د دې سړی باره کښې ته څه وائی اوکومه گواهی ورکوې. هغه تپوس کوی چه د محمد ﷺ باره کښې؟ جواب به ملاویږی چه او هم د هغوی ﷺ باره کښې. دې وائی چه زما گواهی ده چه هغوی ﷺ د الله ﷻ رسول دې هغوی ﷺ د الله ﷻ د طرف نه مونږ له دلیلونه راوړی دی مونږ هغوی ﷺ رښتونی منلی. بیا هغه ته وئیلې شی چه ته هم په دې باندې ژوندې ساتلې وې او هم په دې باندې مړ شوې او ان شاء الله هم په دې باندې به بیا راوچتولې شې. بیا د هغه قبر اویا لاسه کولاوولې شی او نورانی کولې شی اودجنت طرف ته ورته یوه دروازه کولاوولې شی او ورته وئیلی شی چه گوره داستااصلی ځایٔ دې. نو اوس خو به ده ته هم خوشحالی او مزې وی. بیا به د هغه روح په پاکو روحونوکښې د شنو مرغویه قالب کښې په جنتی ونوکښې اوسیږی. اود هغه بدن د څه نه چه دهغه شروع شوې وه هم دهغه طرف ته واپس کولې شی یعنی د خاورو طرف ته (۱)هم دا د آیت مطلب دې.

**اسمان ته دنوی ختلی روح سره نور روحونه ملاقات کوی:**:اوپه روایت کښې دی چه د مرگ د وخت راحت او نور کتلو سره مؤمن دخپل روح د وتلو خواهش کوی او الله ﷻ ته هم دهغه ملاقات خوښ وی. کله چه د هغه روح آسمان ته خیژی نو هغه له دمؤمنانو روحونه راځی او د خپلو پیژندگلو خلقو باره کښې ترې تپوس کوی که چرې دې وائی چه هغه خو ژوندې دې نو خیر اوکه دا وائی چه هغه فلانکې خو مرشوې دې نو دوی خفه شی او وائی چه دلته ته نه دې راوړلې شوې.مؤمن د هغه په قبرکښې کینولې شی بیا د هغه نه تپوس کیږی چه ستا رب څوك دې هغه وائی چه زمارب الله دې.تپوس کولې شی چه ستا نبی څوك دې؟دې وائی زمانبی محمد ﷺ دې،فرښته وائی چه ستادین کوم یودې؟ دې جواب ورکوی زمادین اسلام دې.هم په دې کښې دی چه دالله ﷻ دښمن له کله مرگ راشی اودالله ﷻ خنکان اسباب گوری نو نه غواړی چه د ده روح اوځی او الله ﷻ هم دهغه په ملاقات خوشحاله نه وی. په دې کښې دی چه د ده نه سوال جواب او وهلو تکولو نه پس وائی چه داسې اوده شه لکه پرې شوې مار(۲)او په روایت کښې دی چه کله دې د حضور ﷺ د رسالت گواهی ورکوی نو فرښته وائی تاته څنگه معلومه شوه، آیا تا د حضور ﷺ زمانه لیدلې؟ هم په دې روایت کښې دی چه د کافر په قبرکښې یوه داسې کنړه فرښته په عذاب ورکولو باندې وی چه نه به کله واوری اونه به رحم اوکړی.(۳)

**فرښتې مؤمن ته سلام کوی او جنازه کښې شرکت کوی:**:ابن عباس ﷺ فرمائی چه د مرگ په وخت کښې مؤمن له فرښتې راځی او سلام کوی. د جنت زیرې ورکوی، د ده د جنازې سره ځی. خلقو سره د

---

(۱) حاکم:۱/۳۷۹-۳۸۰وسنده حسن، ابن حبان:۳۱۱۳، عبدالرزاق۶۷۰۳.

(۲) البزار:۸۷۴ وسنده صحیح،مجمع الزوائد:۵۳۰۵۲/۳.

(۳) احمد:۳۵۲/۶-۳۵۳، مجمع الزوائد:۵۱/۳.

ده د جنازې په مونځ کښې شریکیږي.اوهم په دې کښې دي چه کافرانو له فرښتې راځي هغوی په مخونو او شاګانو باندې وهي دهغه نه د هغه په قبرکښې جواب هیروي. دغه شان ظالمان الله ﷻ ګمراه کوي. د حضرت ابوقتاده انصاري ﷺ نه هم داسې قول مروي دې. په دې کښې دي چه مؤمن واني زما نبي محمدبن عبدالله دې.ډیر ځل ده نه سوال کوي او هم دغه جواب ورکوي. هغه ته دوزخ ښائي او واني که کوګ تلې نو ستا داځاي وو او جنت ورته ښائي او واني چه دتوبې په وجه دې داځاي دې.
حضرت طاؤس ﷫فرماني په دنیاکښې ثابت قدمې په کلمه توحیدباندې استقامت دې. او په آخرت کښې ثابت قدمي د منکر نکیر جواب دې. قتاده ﷫ فرماني چه خیر او نیك عمل سره دنیاکښې ساتلې شي او په قبرکښې هم.
**د مؤمن هر عمل که غښ وي او که وړوکې د عذاب قبر نه خلاصوي:**:ابوعبدالله حکیم ترمذی ﷫ خپل کتاب نوادرالاصول کښې راوړي چه د صحابه کرامو ﷡ ولې سره حضور ﷺ د مدینې په جمات کښې فرمانیل چه تیره شپه ماعجیبه خبرې اولیدلې. اومې کتل چه زما یو امتی د قبر عذاب راګیرکړې وو آخر د هغه اودس هغه خلاص کړو. ما یو امتی اولیدو چه شیطان هغه وحشی جوړ کړې وو خود الله ﷻ ذکر راغلو هغه ئې خلاص کړو. یو امتی مې اولیدو چه د عذاب فرښتو هغه راګیر کړې نو د هغه مونځ راغلو او هغه ئې خلاص کړو. یو امتی مې اولیدلو چه تندې هلاك کولو اوکله به حوض له تلو نو دیکې به ورکولې شوې دهغه روژه راغله او په هغه باندې اوبه اوڅکلې اوموړ ئې کړو.حضور ﷺ یو بل امتی اولیدو چه انبیاء علیهم السلام حلقې جوړې کړې وې نو چه کومې حلقې له به تلو او کیناستو به نو دهغه ځاې نه به اوچتولې شو هغه وخت د هغه د جنابت غسل راغلو اودهغه لاس ئې اونیولو او ماسره ئې کینولو. یو امتی مې اولیدلوچه څلورو واړو طرفونه تیارې راګیرکړې دې او لاندې باندې هم دې کښې راګیر دې نو د هغه حج او عمره راغله او د تیارو نه ئې راؤیستلو او رڼړا ته ئې اورسولو. یو امتی مې اولیدلو چه هغه مؤمنانو سره خبرې کول غواړي خو هغوی هغه سره خبرې نه کوي. هغه وخت صله رحمی راغله او اعلان ئې اوکړو چه ده سره خبرې کوئې نو هغوی ورسره خبرې اترې شروع کړې. یو امتی مې اولیدلو چه هغه د خپل مخ نه د أور شغلې اخواکولو د پاره لاس وړاندې کوي په دې کښې د ده خیرات راغلو او دهغه په مخ باندې پرده شو اود هغه په سر باندې سورې جوړ شو. خپل یو امتی مې اولیدلو چه دعذاب فرښتو هغه د هر طرف نه قید کړې وو خو دهغه د نیکئې طرف ته حکم کول او د بدنی نه منع کولو عمل راغلو اود هغوی د لاس نه ئې خلاص کړو اود رحمت فرښتو سره ئې ملاؤ کړو. خپل یو امتی مې اولیدلو چه په زنګونونو باندې پریوتې دې او په الله ﷻ او هغه کښې پرده ده. د هغه ښه اخلاق راغله او د لاس نه ئې اونیولو او الله ﷻ ته ئې اورسولو. خپل یو امتی مې اولیدلو چه د هغه عمل نامه په ګس طرف باندې ورکولې شوه خو د هغه د الله ﷻ نه ویره راغله او دهغه مخې ته ئې کړه. خپل یو امتی ما د دوزخ په غاړه اولیدو چه د الله ﷻ د ویرې نه ورباندې لړچیدل راغله اوهغه ئې د دوزخ نه بچ کړوما خپل یو امتی اولیدو چه هغه پرمخې کړې شوې دې چه دوزخ کښې اوغورزوی خو هغه وخت د الله ﷻ د ویرې نه ژړا راغله او هغه اوښکو هغه بچ کړو.
یو امتی مې د پل صراط په پل باندې تندکونه خوړل خود هغه په ما باندې درود ونیل راغله او د لاس نه ئې اونیولو او نیغ ئې کړو اوپورې ویستلو. یومې اولیدلو چه د جنت دروازې ته اورسیدو خو دروازه ورته بنده شوه. هغه وخت د لااله الاالله ګواهي راغله دروازې کولاؤ کړې او هغه ئې جنت ته اورسول[1])قرطبي ﷫دا حدیث بیانولو سره فرماني چه دا حدیث ډیر لویٔ دې او په دې کښې د هغه مخصوصو اعمالو ذکر دې کوم چه د مخصوصو مصیبتونونه خلاصې ورکونکې دی(تذکره). په دې

[1]) الحکیم الترمذی.

باره كښې ابويعلى موصلي رحمه الله هم يو غريب مطول حديث روايت كړي دي په كوم كښې چه دى الله تبارك وتعالى ملك الموت ته فرمائى ته زما دوست ته له لاړ شه ما په آسمانى سختو باندې په هرقسم ازميښت كړو په هر يو حالت كښې مې هغه په خپله خوشحالئ كښې خوشحاله اوموندلو. ته لاړشه او هغه ماله راوله چه زه هغه له د هر قسم آرام او مزې وركړم.

**د روح ويستلو په وخت فرښتې په مؤمن ډيرې مهربانې وی::** عزارئيل عليه السلام خان سره پنځه سوه فرښتې واخلي او خي. هغوى سره د جنت كفن د هغه ځاى خوشبوئ او د ريحان (كشمالو) غنچې وى د كومو په څوكوچه شل رنګونه وى اود هر رنګ خوشبوئ جدا جدا وى.په سپينه ريښمينه كپړه كښې اعلى مشك په ښه مزه سره راتاو كړي شوى وى. دا ټول راخى ملك الموت د هغه سرته كينى او فرښتې د هغه څلورو واړو طرفو ته كينى. هريو سره چه كومه جنتى تحفه وى هغه د هغه په اندامونو باندې ايږدى او سپينه كپړه او مشك د هغه د زنې لاندې كيخودلې شي. د هغه د پاره د جنت دروازې كولاوولې شى اود هغه روح كله جنتى ګلونوسره، كله جنتى جامو سره او كله جنتى ميوو سره داسې خوشحالولې شى لكه څنګه چه ژړيدونكې ماشوم خلق خوشحالوى. دې وخت كښې به د هغه حورې په خندا خندا هغه غواړى. روح دا نظارې كتلوسره ډير زر د بدن د قيد نه د راوتلو اراده كوى. ملك الموت وائى چه او اې پاكه روحه بغير د ازغو د بيرو طرف ته او بارشوى كيلو طرف ته اود اوږدو اوږدو سورو طرف ته اود اوبودسريكوطرف ته څه. والله څنګه چه مور په بچى باندې مهربانه وى د هغې نه هم زيات ملك الموت به هغه باندې شفقت او رحمت كوى ځكه چه هغه ته معلومه ده چه دا د الله ﷻ محبوب دې. كه هغه ته لږ شان هم تكليف اورسيدو نو زما د رب خفګان به زما نه وى بس همدغه شان به دا روح د دې بدن نه جدا كوى لكه د اخلى شوى ورونه وينبته. هم د دې باره كښې د الله ﷻ ارشاد دې چه د هغوى روح طيب فرښتې قبض كوى. بل ځاى كښې ارشاد دې كه چرې هغه د مقربينونه دې نود هغه د پاره آرام او مزې دى. يعنى مرګ د آرام او مزو ملاويدونكې اود دنيا په بدله كښې جنت. د ملك الموت د روح قبض كولو سره روح بدن ته وائى الله ﷻ دې تاته جزائې خير دركړى ته د الله ﷻ د اطاعت طرف ته تندى كونكې اود الله ﷻ د معصيت او ګناه نه روستو كيدونكې وې. تا پخپله هم خلاصې بياموندو او زه دې هم خلاص كړم. بدن هم روح ته هم داسې جواب وركوى.

**د مؤمن په مرګ باندې فرښتې اسمان او زمكه هم ژړا كوى::** د زمكې هغه ټولې حصې په كومو چه ده د الله ﷻ عبادت كړې وو دهغه دمرګ نه پس تر څلويښتو ورځو پورې ژاړى. دغه شان د آسمان هغه ټولې دروازې په كومو چه به د هغه نيك عملونه ختل او د كومو نه چه به دهغه رزق راكوزيدلو په ده باندې ژاړى. هغه وخت هغه پنځه سوه فرښتې د ده د بدن نه چاپيره اودريږى او د هغه په غسل كښې شاملې وى. انسان چه د هغه اړخ بدلوى نو دې نه وړاندې فرښتې د هغه اړخ بدلوى اود هغه د لامبولونه پس د انسانى كفن نه وړاندې خپل خان سره راوړلې شوې كفن وراغوندى. د هغوى د خوشبونه اول خپله خوشبو لګوى اود هغه د كور د دروازې نه واخله تر قبر پورې دواړو طرفو ته په صفونو كښې ولاړې وى او د هغه د پاره استغفار كوى.

**د مؤمن په كاميابئ شيطان دافسوس ژړا كوى::** هغه وخت شيطان دومره په زوره ژړا كوى چغې وهى لكه چه د هغه د بدن هډوكى ماتيږى او وائى چه زما لښكريانو تاسو تباه شنئ افسوس چه دې ستاسو د لاس نه څنګه بچ شو؟ هغوى جواب وركړى چه دا خو معصوم وو. كله چه د هغه روح واخلى او ملك الموت خيژى نو حضرت جبرائيل عليه السلام د اويا زره فرښتو سره دهغه استقبال كوى.هر يو هغه ته خان له د الله ﷻ زيرى اوروى. تردې چه دهغه روح د الله ﷻ عرش ته رسى. هلته په رسيدو باندې په سجده كښې پريوځى. هغه وخت د الله ﷻ ارشاد كيږى چه زما د بنده روح بغير د ازغو بيرو كښې او قط په قط

کیلو په ونوکښې، په اوړدو سورو کښې او بهیدونکو اوبو کښې ځای کړنی. بیا چه کله هغه په قبر کښې کیخودې شی نو ښی طرف ته مونځ اودریږی ګس طرف ته روژه اودریږی د سر طرف ته قرآن راځی مونځونو ته تګ د پښو طرف ته وی یوه غاړه باندې صبر اودریږی د عذاب یو غړنی راتوپ کونکې راځی خو د ښی طرف نه نی هغه مونځ منع کوی چه دې همیشه بیدار پاتې وو دې قبر ته په راتلوسره نی لړ شان آرام بیاموندو. هغه به د ګس طرف نه راځی دلته نه به روژه داسې ونیلو سره راتلوته نه پریږدی چه د سر نه راځی نو دې ځای نه ورته قرآن او ذکر داسې وینا کولو سره منع کوی. هغه به د پښود طرف نه راشی نو د هغه د مانځه دپاره تګ به هغه منع کوی.غرض دا چه د څلورو واړو طرفونه به د الله ﷻ محبوب محفوظ شی او عذاب ته به د چرته نه هم لار ملاونه شی. هغه واپس خې نو دغه وخت کښې صبر وائی چه ما کتل که چرې تاسه هم دا عذاب لرې شی نو ماته د وینا کولو څه ضرورت؟ ګنی نو ما به هم د هغوی حمایت کولو.زه به اوس د پل صراط او میزان په وخت کښې د ده په کار راځم.

**مؤمن ته به جنت او دوزخ دواړه اوخودلې شی::** دوه فرښتې رالیږلې شی یوې ته نکیر او بلې ته منکر وائی دا د ناخاپی اوچتونکې بجلئی غوندې وی د هغوی غاښونه د اوسپنې په شان وی اود هغوی د سا نه شغلې غوندې راوځی د هغوی ویښته دپښونه لاندې زوړند وی د هغوی د دواړو اوږو مینځ کښې دومره دومره فاصله وی د هغوی زړونه دنرمۍ او رحمت نه بالکل خالی وی. په دوی کښې د هریو په لاس کښې ګرځ وی. که قبیله ربیعه اوقبیله مضر راجمع شی او دا اوچتول غواړی نو ناممکن دی. هغوی راتلو سره هغه ته وائی پاڅه کینه نودې سیدا کینی د هغه کفن د هغه په اړخونو راشی هغوی ده نه تپوس کوی ستا رب څوك دې؟ ستا دین څه دې؟ ستا نبی څوك دې؟ صحابه کرام ﷺ چپ پاتې نه شو او عرض نی اوکړو یا رسول الله ﷺ! داسې وریرونکو فرښتوته به څوك جواب ورکړې شی؟ هغوی ﷺ هم دا آیت ﴿یثبت﴾ تلاوت کړو او ونی فرمائیل هغه به بې ویرې جواب ورکړی چه زما رب الله وحده لاشریك له دې اوزمادین اسلام دې کوم چه د فرښتو هم دین دې او محمد ﷺ زما نبی دې چه خاتم النبیین دې. هغوی به وائی چه تا صحیح جواب ورکړو نوهغوی به د ده قبر دهغه ښی طرف نه د ګس طرف نه د هغه د وړاندې نه دهغه دروستونه د هغه د سر طرف نه او د پښو طرف نه څلویښت څلویښت لاسه ارت کړی. هغوی به نی دوه سوه لاسه کولاو کړی. هغه ته به فرمائی خپل پورته طرف ته نظر اوچت کړه.دې به ګوری چه د جنت دروازه به کولاو وی هغوی به وائی چه اې د الله ﷻ دوسته تا د الله ﷻ خبره منلې ده نو ستا منزل دا دې. حضور ﷺ فرمائی چه د هغه الله ﷻ قسم د چا په قبضه کښې چه د محمد ﷺ ځان دې په هغه وخت کښې چه کوم خوند او مزه د هغه په زړه کښې وی هغه نه ختمیدونکی دد.بیا هغه ته ونیلې کیږی اوس د ځان لاندې اوګوره دې به ګوری چه د دوزخ دروازه کولاو ده. فرښتې به وائی ګوره دې نه الله ﷻ تاله د همیشه د پاره خلاصې درکړو.بیا خو به د هغه زړه دومره خوشحاله شی دا خوشحالی به د همیشه همیشه د پاره اخواکیږی نه. حضرت عائشه ؓ فرمائی چه د ده د پاره به د جنت اووه اویا دروازې کولاویږی چرته نه چه به د بادصبا چپې د خوشبوئې او یخوالی سره راځی. تر دې پورې چه الله ﷻ به دې د دغه ځای نه د قیامت په قائمیدو باندې راوچت کړی.(۱)

**دکافرو روح به په بدبوداره ګنده کپړه کښې ویستلې شی ::** هم په دې اسنادوسره روایت دې چه الله ﷻ د خراب بنده د پاره ملك الموت ته فرمائی لاړ شه او زما دا دښمن راوله. ده ته ما په رزق کښې برکت ورکړې ووخپل نعمتونه مې ورکړی وو ولې بیا هم دې خما د نافرمانونه بچ نه شو هغه راوله چه زه ترې بدله واخلم. هغه وخت حضرت ملك الموت ﷺ په ډیر بد او ویرونکی شکل کښې راځی داسې لکه چه

---

۱) التقریب:۲۱۹، المیزان:۳۲۸/۲، المیزان۳٤٤/۱.

ځا دومره عجيبه او ويرونكې شكل هډو ليدلې نه وي. دولس ستركې وي د دوزخ ازغني جامې ورسره وي پنځه سوه فرښتې چه د دوزخ اور اود اور كوړې ورسره وي هغه سره وي. ملك الموت هغه ازغنې جامې چه د دوزخ د اور وي د هغه په بدن باندې راكاږي په رګ رګ كښې د دوزخ د اور ازغي ننوځي. بيا ئې داسې راتاووي چه د هغه هر جوړ او اندام سست شي بيادهغه روح دهغه د پښې دګوتې نه راكاږي او د هغه په زنګونونو باندې وراچوي. هغه وخت د الله ﷻ دښمن بې هوشه شي نو ملك الموت هغه اوچت كړي. فرښتې هغه په خپلو دوزخي كوړو باندې په شا او مخ باندې وهي. بيا ملك الموت هغه اونيسي او د هغه روح د هغه د ګيټو د طرف نه راكاږي اودهغه په زنګونونو باندې وراچوي د هغه په نرې ملاباندې وراچوي.داد الله ﷻ دښمن هغه وخت بيا بې تابه شي دمرګ فرښته بيا هغه بې هوشې اوچته كړي اوفرښتې بيا د هغه په مخ او شا باندې كوړې وروي. آخر دا چه روح ئې په سينه باندې ورخيژي بيا حلق ته اورسي بيا فرښتې د دوزخ هغه تانبه او د دوزخ سروټكې د هغه د زنې لاندې ايږدي او ملك الموت فرمائي چه اې لعين ملعون روحه روان شه تاؤ اوګرموالي له سوزونكي اوبو كښې تكو تورولوګو دوړو كښې كوم كښې چه نه څه يخ ځاى شته اونه ښه ځاى. كله چه دا روح قبض كيږي نو خپل بدن ته وائي الله ﷻ دې تاسره پوه شي تا زه د الله ﷻ د نافرمانو طرف ته بوتلم پخپله هم هلاك شوې او زه دې هم برباد كړم. بدن هم روح ته هم دغه وائي دزمكې هغه ټول حصې چرته چه ده د الله ﷻ نافرمانى كوله په هغه باندې لعنت كوي.دشيطان لښكر منډې وهي او شيطان له رسي او وائي چه مونږ نن يو دوزخ ته اورسولو. د هغه قبر دومره تنګ شي چه د هغه ښې پوښتئ په ګسو كښې او ګسې پوښتئ په ښو پوښتو كښې ورننوځي. تور ماران د بختي اوښانو برابر دهغه قبر ته ورليږلې شي چه د هغه د غوږونو او پښو په ګوتو باندې هغه له ټكونه وركول شروع كوي. او پورته راخيژي. ټردې پورې چه د بدن مينځ ته رسي. دوه فرښتې راليږلې شي د چا ستركې چه د تيزې بجلئ په شان اود چا آواز چه د تندر په شان د چا غاښونه چه د ځناورو غوندې د چا ساچه د اور د شغلو په شان د چا وينته چه د پښو لاندې پورې د چا د دواړو اوږو په مينځ كښې چه دومره دومره فاصله ده د چا په زړه كښې چه د رحم او رحمت نوم او نښه هم نشته د چا نوم چه هم منكر او نكير دې. د چا په لاسونوكښې چه د اوسپنې دومره لوئ لوئ ګرځونه دي كوم چه قبيله ربيعه او مضر هم نه شي اوچتولي. هغوى ده ته وائي پاڅه نو هغه نيغ كيني اود پرتوغاښ ترلو ځاى پورې دهغه كفن راشي هغوى ده نه تپوس كوي ستا رب څوك دې ستا دين څه دې ستا نبي څوك دې؟دې وائي چه ماته خو هيڅ پته نشته. هغوى به وائي چه ښه نه تا معلومه كړه اونه تا لوستلې دي بيا ئې دومره په زوره په ګرځ وهي چه دهغه بځرى د هغه قبردك كړي بيا واپس شي او ورته وائي چه پاس اوګوره دې يوه كولاؤ شوې دروازه اووينى هغوى وائي چه والله كه ته د الله ﷻ حكم منونكې وې نو ستا دا ځاىٔ وو. حضور ﷺ فرمائي چه اوس خو د ده هغه ارمان وي چه هيڅ كله به د هغه د زړه نه جدا نه شي. بيا به ورته وائي چه اوس خپل لاندې اوګوره نو هغه به ګوري چه د دوزخ يوه دروازه به كولاؤ وي فرښتې به وائي اې د الله ﷻ دښمنه تا د الله ﷻ د نافرمانئ كارونه كړي دي نو اوس ستا ځاى دا دې. والله هغه وخت به د هغه زړه د غم او افسوس نه كيني دا غم به د هغه نه چرې هم هير نه شي د هغه د پاره د دوزخ اووه اويا دروازې كولاويږي چرته نه چه به ګرمه هوا او بړاس هغه له هميشه راځي. تر هغه وخته پورې چه هغه به الله ﷻ راپاڅوي. دا حديث ډير غريب دې اود دې سياق هم ډير عجيبه دې اود دې راوي يزيد رقاشي چه د حضرت انس ﷺ نه لاندې راوي دې اود ده غرائب او منكرات ډير دي او د آئمه په نيز هغه ضعيف الروايت دې. والله اعلم. په ابوداؤد كښې دي چه حضرت عثمان ﷺ فرمائي چه كله به رسول الله ﷺ د يو مړي د ښخيدونه فارغ شونوهلته به اودريدو اوفرمائيل به ئې چه دخپل رورد پاره استغفار اوكړئ اودهغه د پاره ثابت قدمي

اوغوارئي. دې وخت كښې د ده نه سوال كيږي(١)حافظ ابن مردويه د الله ﷻ فرمان﴿وَلَوْ تَرٰى إِذِ الظّٰلِمُونَ فِي غَمَرٰتِ الْمَوْتِ وَالْمَلٰٓئِكَةُ بَاسِطُوٓا أَيْدِيهِمْ ۚ أَخْرِجُوٓا أَنفُسَكُمُ ۖ الْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُونِ بِمَا كُنتُمْ تَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ غَيْرَ الْحَقِّ وَكُنتُمْ عَنْ ءَايٰتِهِۦ تَسْتَكْبِرُونَ﴾ الخ په تفسير كښې يو ډير اوږد حديث وارد كړې دې هغه هم د غرائبو نه ډك دې.

| |
|---|
| أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ بَدَّلُوا |
| آيا تا اونۀ ليدل \| هغه كسان \| چې بدل كړو هغوئ |
| آيا تا هغه خلق نۀ دي ليدلي \| چې كومو د الله ﷻ نعمت په |
| نِعْمَتَ اللَّهِ كُفْرًا وَأَحَلُّوا قَوْمَهُمْ دَارَ الْبَوَارِ |
| نعمت د الله \| په ناشكرئ سره \| او بوتلو (ديكه كړو) هغوئ \| قوم خپل \| كور د هلاكت ته |
| ناشكرئ بدل كړو \| ..........اوخپل قوم ئې هم د هلاكت كور ته ورداخل كړو |
| جَهَنَّمَ يَصْلَوْنَهَا ۖ وَبِئْسَ الْقَرَارُ وَجَعَلُوا لِلَّهِ |
| (يعنې)دوزخ ته\|چې سوزي به په هغې كښې \| او ډير بدخائې دې \| دقرار \| او جوړ كړل هغوئ \| الله د پاره |
| چې جهنم دې \| چې ټول به ورته داخليږي \| اوهغۀ ډير بد خائې دې د اوسيدو \| ..........او دې خلقو |
| أَندَادًا لِّيُضِلُّوا عَن سَبِيلِهِ ۗ قُلْ تَمَتَّعُوا |
| شريكان \| دپاره ددې چې بې لارې كړي خلق \| د لارې د هغۀ نه \| ورته اووايه \| چې نفع واخلئ تاسو |
| الله دپاره شريكان جوړ كړي دي \| چې خلق د هغۀ دلارې نه گمراه كړي \| ورته اووايه چې لږه |
| فَإِنَّ مَصِيرَكُمْ إِلَى النَّارِ |
| پس بيشكه واپس تلل دي ستاسو \| وور ته \| |
| فائده واخلئ \| بيشكه ستاسو تلل دوزخ طرفته دي |

قوله تعالى :: أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ بَدَّلُوا نِعْمَتَ اللَّهِ

**د نعمت د ناقدرئ سزااو د الَّذِينَ بَدَّلُوا نه څوک مراد دي؟** صحيح بخارى شريف كښې دي﴿أَلَمْ تَرَ﴾ په معنى كښې ﴿أَلَمْ تَرَ﴾ دې يعنى آيا ته نه پيژنې الخ.دبوار معنى هلاكت ده.﴿بَارَ يَبُورُ بَوْرًا﴾ دبوراً معنى د هلاكيدونكو ده. دې خلقو نه مراد د حضرت ابن عباس ﷺ دوينا مطابق د مكې كافران دى او بل قول دې چه دې نه مراد جبله بن ايهم اود هغه تابعدارى كونكې عرب دى كوم چه روميانو سره ملاوشوې وو خو مشهور او صحيح قول د ابن عباس ﷺ اولنې دې كيدې شى چه الفاظ د خپل عموم په اعتبار سره ټولو كافرانو ته شامل وى. الله ﷻ خپل خوږ نبى حضرت محمد ﷺ د ټول عالم د پاره رحمت جوړ كړې او د ټولو خلقو د پاره نعمت جوړكړې راليږلې دې. چا چه د دې رحمت او نعمت قدردانى اوكړه هغه جنتى دې او چا چه ناقدرى اوكړه هغه دوزخى دې. د حضرت على ﷺ نه هم يو قول د حضرت ابن عباس ﷺ د رومبنى قول برابر نقل دې د ﴿ابن الكواء﴾ په جواب كښې هغوى هم دا فرمانيلى وو چه دا د بدر په ورځ د قريشو كفار دى. او په روايت كښې دى چه د يوسرى په سوال باندې هغوى فرمانيلې وو دې نه مراد د قريشو منافقان دى. او په روايت كښې دى چه حضرت على ﷺ يو خل فرمانيل چه آيا

(١) ابوداؤد كتاب الجنائز باب استغفار عندالقبر اللميت فى وقت الانصراف ٣٢٢١ وسندهو حسن.

مانه څوك د قران په بابت کښې څه معلومات نه کوی؟والله اعلم. زما په علم کښې که چرې څوك نن زما نه زیات د قرآن عالم وي اوهغه دسمندرونونه اخواوې نوزه به خامخا هغه له رسیدم. دې اوریدو سره عبدالله بن الکواء اودریدو او ونی وئیل چه دا کوم خلق دی د چا باره کښې چه د الله ﷻ فرمان چه هغوی د الله ﷻ نعمت په کفر باندې بدل کړو او خپل قوم ئې د هلاکت په کنده کښې اوغورزو. هغوی اوفرمائیل دا د قریشو مشرکان دی هغوی له دالله ﷻ نعمت ایمان اورسیدو خو هغوی دا نعمت په کفر سره بدل کړو او په روایت کښې د هغوی نه مروی دی چه دې نه مراد د قریشو دوه فاجران دی بنو امیه او بنو مغیره. بنو مغیره خپل قوم بدر کښې اودرولې وو او هغوی ئې په هلاکت کښې اچولې وو او بنو امیه د أحد په ورځ خپل کسان غرق کړل. په بدر کښې ابوجهل وو او أحد کښې ابوسفیان. اود هلاکت د کورنه مراد دوزخ دې او په روایت کښې دی بنو مغیره خو په بدرکښې هلاك شو او بنو امیه ته د څو ورځو فائده ملاؤ شوه. د حضرت عمر ﷺ نه هم د دې آیت په تفسیرکښې هم دا مروی دی. ابن عباس ﷺ چه کله د هغوی نه سوال اوکړو نوهغوی اوفرمائیل دواړه د قریشو بدکاره دی. زما ماما او ستا تره او زما ماماګان خو هم د بدر په ورځ ختم شو او ستا ترونو ته الله ﷻ مهلت ورکړې دې دوی به دوزخ ته څی چه ډیر خراب ځائ دې. هغوی پخپله شرك اوکړو او نور ئې هم دې طرف ته رابلل. اې نبي! ته دوی ته اووایه چه په دنیاکښې څه خوراك څښاك او اغوستن اوکړئې آخری ځائ ستاسو دوزخ دې. لکه چه ارشاد دې چه مونږ به دوی ته هسې لږ شان آرام ورکړو بیا به ئې د سخت عذاب طرف ته بې بس کړو. یعنی دنیاوی ګټه به هغوی اوکړي خو واپس کیږی به هم زمونږ طرف ته. هغه وخت به مونږ هغوی ته هغوی د کفر په وجه سخت عذاب ورکوو.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | | قُلْ | لِّعِبَادِيَ | الَّذِيْنَ |
| | | اووایه | بندګانو زما ته | هغه (بندګان) |
| | | (ائي محبوبه ﷺ) زما هغه بندګانو ته اووایه | | |
| اٰمَنُوْا | يُقِيْمُوا الصَّلٰوةَ | وَيُنْفِقُوْا | مِمَّا | رَزَقْنٰهُمْ |
| چي ایمان ئې راوړي دي | چي قائم کړی مونځ | او خرج کړی | اد هغې نه | چي ورکړې دی مونږ هغوئ ته |
| چي ایمان ئې راوړي دي | چي هغوئ د مونځونو پابندي کوی | او څه چي مونږ ورکړی دی | د هغې نه | |
| سِرًّا | وَّعَلَانِيَةً | مِّنْ قَبْلِ | اَنْ يَّاْتِيَ يَوْمٌ | لَّا بَيْعٌ |
| په پټه | او په ښکاره | مخکښي د دې نه | چي راشي هغه ورځ | چي نه به وی اخستل خرخول |
| په پټه او په ښکاره (دنیکئ په لار کښې) خرڅ کوی | د دې نه وړاندي چي هغه ورځ راشي | چي | | |
| فِيْهِ | وَلَا خِلٰلٌ ⑪ | | | |
| په هغې کښي | او نه دوستي | | | |
| په کښې اخستل خرخول نه وی | | | | |

**قوله تعالى: يُقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَيُنْفِقُوْا**
د الله ﷻ حکم مونځ اوزکوة- الله ﷻ خپلو بندیګانوته دخپل اطاعت اوخپل حق منلو اود الله ﷻ مخلوق سره احسان او ښه سلوك کولو حکم ورکوی. فرمانی چه مونځ برابر کوئې چه د الله ﷻ وحده لاشریك له عبادت دې او زکوة خامخا ورکوئې خپلوانو ته هم او پردو ته هم. اقامت نه مراد د وخت حدود د رکوع خشوع اود سجدې حفاظت کول دی. د الله ﷻ درکړې شوې رزق د هغه په لارکښې پټ ښکاره اود هغه

د رضا د پاره نورو له هم ورکول پکار دی دي د پاره چه په هغه ورځ مخلصی ملاؤ شی چه په کومه ورځ به هیڅ اخستل خرڅول نه کیږی اونه به څه دوستی او اشنائي وی. که څوك خپل خان هم د فدي په توګه خرڅول اوغواړی نو ناممکن دی لکه چه فرمان دي ﴿فَالْيَوْمَ لَا يُؤْخَذُ مِنكُمْ فِدْيَةٌ وَلَا مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ یعنی نن تاسو نه اوکافرانو نه څه فدیه اوبدله نه شی اخستی هلته به دچاد دوستئ په وجه نه خلاصیږی بلکه هلته به عدل او انصاف وی. ﴿خلال﴾مصدر دي ﴿امراءالقیس﴾په شعر کښې هم دا لفظ دې. په دنیا کښې لین دین او دوستی په کار راځی خو هلته دا څیز که د الله ﷻ د پاره نه وی نو بې کارڅیزدې. د الله ﷻ ارشاد دي ﴿وَاتَّقُوا يَوْمًا لَّا تَجْزِي نَفْسٌ عَن نَّفْسٍ شَيْئًا وَلَا يُقْبَلُ مِنْهَا شَفَاعَةٌ وَلَا يُؤْخَذُ مِنْهَا عَدْلٌ وَلَا هُمْ يُنصَرُونَ﴾دهغه ورځې د عذابونونه دبچ کیدلوکوشش کوه په کومه ورځ چه به څوك هم دچاپه کارنه راځی.نه به دچانه فدیه قبلولې شی نه به چاله دچا شفاعت فائده ورکوی نه به څوك دچا څه امداد کولې شی.ارشاد باری تعالی دي﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَنفِقُوا مِمَّا رَزَقْنَاكُم مِّن قَبْلِ أَن يَأْتِيَ يَوْمٌ لَّا بَيْعٌ فِيهِ وَلَا خُلَّةٌ وَلَا شَفَاعَةٌ ۗ وَالْكَافِرُونَ هُمُ الظَّالِمُونَ﴾ ایماندارانوکوم چه مونږ تاسوته درکړی دی تاسودهغې نه زمونږپه لارکښې خرچ کونې د دې نه وړاندې چه هغه ورځ راشی په کومه کښې نه څه خرڅول اخستل شته نه دوستی او نه شفاعت. هم کافران په اصل کښې ظالمان دی.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَالْأَرْضَ | السَّمٰوٰتِ | خَلَقَ | الَّذِیْ | اَللهُ |
| او زمکه | اسمانونه | چې پیدائې کړل | هغه ذات دی | الله |

| الله ﷻ هغه ذات دې چې چا اسمانونه او زمکه پیدا کړل |
|---|

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لَّكُمْ | رِزْقًا | مِنَ الثَّمَرٰتِ | بِهٖ | فَأَخْرَجَ | مَآءً | وَأَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ |
| د پاره ستاسو | رزق | دهر قسم میوو نه | په دغه اوبو سره | نو راویستلی ئې | اوبه | او نازلې ئې کړې اسمان نه |

| او د بره نه ئې اوبه راوورولې اِبیا د هغې اوبو نه ئې مختلفې میوې تاسو دپاره د رزق په طور پیدا کړې |
|---|

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِأَمْرِهٖ | فِي الْبَحْرِ | لِتَجْرِيَ | لَكُمُ الْفُلْكَ | وَسَخَّرَ |
| په حکم د هغهٔ سره | په دریاب کښې | دپاره ددې چې ګرځی | ستاسو دپاره کشتئ | او تابع ئې کړه |

| اوتاسو دپاره ئې بیړئ تابع کړه چې د هغهٔ په حکم سره سمندر کښې روانه وی |
|---|

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَالْقَمَرَ | لَكُمُ الشَّمْسَ | وَسَخَّرَ | الْأَنْهٰرَ | لَكُمُ وَسَخَّرَ |
| او سپوږمئ | ستاسو دپاره نمر | اوتابع ئې کړل | نهرونه | او تابع ئې کړل ستاسو دپاره |

| او ستاسو د فائدې دپاره ئې دریابونه تابع کړل او ستاسو دپاره ئې نمر او سپوږمئ په کار لګولی دی |
|---|

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَاٰتٰكُمْ مِّنْ كُلِّ مَا | وَالنَّهَارَ | لَكُمُ الَّيْلَ | وَسَخَّرَ | دَآئِبَيْنِ |
| او در ئې کړل تاسو ته ټول هغه څیزونه | او ورځ | ستاسو دپاره شپه | او تابع ئې کړل | چې مسلسل روان دی |

| چې همیشه روان وی اوتاسو دپاره ئې شپه او ورځ تابع کړل اوتاسو ته ئې هغه ټول څیزونه درکړل |
|---|

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اِنَّ | لَا تُحْصُوْهَا | نِعْمَةَ اللهِ | وَاِنْ تَعُدُّوْا | سَاَلْتُمُوْهُ |
| بیشکه | نه شئ شمارولې هغه | نعمتونه د الله | او که شماروئ تاسو | چې تاسو اوغوښتل هغهٔ |

| چې تاسو غوښتل اوکه تاسو د الله ﷻ نعمتونه شمیرل غواړئ نو نهٔ ئې شئ شمیرلې بیشکه |
|---|

| الْإِنسَانَ لَظَلُومٌ كَفَّارٌ |
|---|
| انسان \| ډيرظالم دي \| ډير ناشکره دي \| |
| انسان ډير بې \| نصافه ناشکره دي \| |

قوله تعالى:: اَللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ

**دالله ﷻ نعمتونه اودهغې ناشکري:**- دالله ﷻ قسم قسم بې شماره نعمتونوته اوګوره.آسمان هغه يو محفوظ چت جوړکړې دې. زمکه ئې بهترين فرش جوړکړې دې. د آسمان نه باران راورولو سره د خوند او مزې ميوې فصلونه او باغونه تياروي. هم دهغه په حکم سره کشتئ د اوبو دپاسه روانې کړخې دې د پاره چه تاسو د يوې غاړې نه بلې غاړې ته او د يوملك نه بل ملك ته اورسوی. اوچه تاسو د دې ځائ مال هلته او د هلته نه دلته يوسئی ګټه حاصله کړئ او تجربه زياته کړئ. نهرونه هم هغه ستاسو په کارکښې لګولې دی.تاسو د دې اوبه ځکئ او په نوروهم ځکوئ اوپه دې باندې فصلونه کوئ. لامبئ وينځئ او په دې باندې قسماقسم فائدې حاصلوئ. دهميشه ګرځيدونکې اونه ستړې کيدونکې نمر او سپوږمئ هم ستاسو د فائدې په کارونوکښې اخته ده. په مقرر چال او مقررو ځايونو باندې ګردش کښې لګيادی. نه دوی جنګيږی او نه روستوکيږی. شپه او ورځ هم د دوی په تلو راتلوسره ځی راځي. ستوری هم د هغه د حکم ماتحت دی. هغه رب العالمين د برکت نه ډك دې. کله ورځې لويوی او کله شپې اوږدوی.هرڅيز په خپل کارکښې سرتيتې مشغول دې.هغه الله عزيز اوغفار دې.ستاسود ضرورت ټول څيزونه هغه تاسو له درکړی دی.تاسو چه د خپل حال اوقال نه د کومو کومو څيزونو محتاج وئ هغه هر څه تاسو له درکړی دی.

**د الله ﷻ نه که نعمت غواړئ هم ئې ورکوی که نه غواړئ نو هم ئې ورکوی:**:په غوښتو باندې هم هغه ورکوی او په نه غوښتو باندې هم. د هغه لاس نه بنديږی. ته به څه د الله ﷻ د ټولو نعمتونو شکريه ادا کړې ته خو هغه پوره شميرلې هم نه شې.طلق بن حبيب ﷺ فرمائی چه دالله ﷻ حق د هغه نه ډير دروندې چه بنديګان هغه ادا کړې شی اود الله ﷻ نعمتونه دهغې نه ډيرزيات دی چه بنديګان هغه اوشميری. خلقو شپه ورځ توبه او استغفار کوئ.په صحيح بخاری کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائيل چه اې الله هم ستا د پاره ټول حمد او ثناء ده. زمونږ ثناګانې ناکافی دی پوره او بې پرواه کونکې نه دی. یاالله ته مو معاف کړې.(١) بزار کښې دحضورﷺ ارشاد دې د قيامت په ورځ به د انسان درې کتابونه راوڅی يو کښې به نيکئی ليکلې شوې وی په دونم کښې به ګناهونه وی او په دريم کښې به د الله ﷻ نعمتونه وی.الله ﷻ به خپلو نعمتونوکښې د ټولونه وړوکی نعمت ته اوفرمائی پاسه اوخپله بدله او معاوضه د ده د نيکوعملونونه واخله. دې سره به د هغه ټول اعمال ختم شی. بيا به هم هغه يك دم اووائی چه يا الله زما پوره قيمت خو وصول نه شو. خيال کوئ چه لا تراوسه پورې د ګناهونو کتاب لا هغه شان پروت دې او د ټولو نعمتونو کتاب هم لا هغه شان پروت دې. که په بنده باندې د الله ﷻ اراده د رحم او کرم اوشوه نو اوس به دهغه نيکئی زياتې کړی او د هغه د ګناهونو نه به زياتې شی او هغه ته به اوفرمائی چه ما خپل نعمتونه تاته بغير د بدلې اوبښل.(٢) د دې سند ضعيف دې.

**د شکر پوره ادا کولو طريقه::** په يو روايت کښې دی چه حضرت داؤد ﷺ د الله ﷻ جل وعلا نه تپوس اوکړو چه زه ستا شکر څنګه ادا کړم؟ شکر کول هم پخپله ستايو نعمت دې. جواب به ملاؤ شی داؤد

(١) صحيح بخاری کتاب الاطعمة باب مايقول اذا فرغ من طعامه:٥٤٥٨.

(٢) البزار٣٤٤٤، مجمع الزوائد:١٠/مجمع الزوائد:١٠/٣٥٧

اوس تا شکر اداکړو کله چه ته په دې پوهه شوې اود دې اقرار دې اوکړوچه ته زماد نعمتونو د شکر ادا کولو نه قاصر نې. حضرت امام شافعی رحمه الله فرمانی هم د الله ﷻ د پاره خو حمد دې د چا د بې شمیره نعمتونو نه چه د یو نعمت شکر هم بغیر د هغه د یو نوی نعمت نه مونږ نه شو ادا کولې خکه چه په دې نوی نعمت باندې بیا یو شکر ادا کول واجب کیږی.نو بیا ددې نعمت د شکر ادا کولو توفیق ملاویدلو باندې بیا نعمت ملاوشو د کوم شکریه چه واجب شوه. یو شاعر هم دا مضمون په یو شعر کښې تړلې دې که په یو یو ویښته باندې ژبه وی نوبیاهم ستا د یو نعمت شکر پوره نه شو اداکولې. ستا احسانات او انعامات بې شمیره دی.

| |
|---|
| وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ رَبِّ اجْعَلْ |
| او کله چې \| اوونیل \| ابراهیم ﷺ \| ائې ربه زما \| جوړ کړه |
| .اوځه وخت چې ابراهیم ﷺ دعا اوکړه \| چې |
| هٰذَا الْبَلَدَ اٰمِنًا وَّاجْنُبْنِيْ وَبَنِيَّ اَنْ نَّعْبُدَ |
| دا ښار \| امن والا \| او اوساته ما \| او خامن زما \| (ددې نه) چې عبادت اوکړو مونږ |
| ائې زما ربه دا ښار(مکه) د امن ځائې اوګرځوه\|.......... اوما او زما اولاد د بتانو د عبادت نه |
| الْاَصْنَامَ رَبِّ اِنَّهُنَّ اَضْلَلْنَ كَثِيْرًا مِّنَ النَّاسِ فَمَنْ |
| دبتانو \| ائې ربه زما \| بیشکه دې بتانو \| بې لارې کړل \| ډیر \| د خلقو نه \| نو هغه څوک |
| بچ اوساته\|ائې زما ربه دې بتانو خو ډیر خلق ګمراه کړی دی(دهغوی دګمراهئ سبب جوړشوی دی)\| نو چا |
| تَبِعَنِيْ فَاِنَّهٗ مِنِّيْ وَمَنْ عَصَانِيْ |
| چې روان شو په طریقه زما \| نو بیشکه هغهٔ \| د(ملت) زمانه دې\| او هغه چا\| چې نافرمانی او کړه زما |
| چې زما تابعداری اوکړه \| ............هغهٔ خو زما دی \| ............او چا چې زما نافرمانی اوکړه |
| فَاِنَّكَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ |
| نوبیشکه تهٔ \| بښونکې \| مهربانه نې \| |
| نو تهٔ بښونکې ډیر مهربان یې |

قوله تعالی:: رَبِّ اجْعَلْ هٰذَا الْبَلَدَ

د مکې د پاره د امن دعا:- الله ﷻ بیان فرمانی چه د حرمت والا ښار په شروع کښې د الله ﷻ په توحید باندې جوړشوې وو.د دې اول بانی حضرت ابراهیم خلیل الله ﷺ دالله ﷻ نه سوا د نورو د عبادت کونکونه بری یعنی خلاص وو. هم دوی د دې په امن کیدو دعاکړې وه چه الله ﷻ قبوله کړه. د ټولونه اول د برکت نه ډك او د الله ﷻ دهدایت کورمکه مکرمه هم د الله ﷻ ده. کوم کښې چه د نورو ډیرو نښونه علاوه مقام ابراهیم هم دې. دې ښارته چه څوك اورسیدل نو هغه امن او آمان ته راغلو. د دې ښار د جوړولو نه پس خلیل الله ﷺ دعا اوکړه چه یا الله دا ښار د امن والا جوړکړه. د دې د پاره نې اوفرمانیل چه د الله ﷻشکر دې چا چه ماله د حضرت اسماعیل ﷺ او حضرت اسحاق ﷺ په شان بچې راکړه. حضرت اسماعیل ﷺ د حضرت اسحاق ﷺ نه دیارلس کاله مشروو. دې نه مخکښې چه کله هغوی حضرت اسماعیل ﷺ پښې روونکې د مور سره دلته راوستلې وو نو هغه وخت کښې هم هغه

ددې ښارد امن دعاکړې وه خود هغه وخت الفاظ داوو. ﴿رَبِّ اجۡعَلۡ هٰذَا الۡبَلَدَ﴾ نويدې دعاکښې بلد باندې لام نشته خکه چه دادعاد ښاردآبادئ نه اول ده اواوس خو ښار جوړ شوې وو نو بلد نې معرف بالام راوړلو. په سورة بقره کښې مونږ دا ځيزونه په وضاحت او تفصيل سره ذکر کړي. بيانې په دونمه دعا کښې خپل اولاد هم شريك کړلو. انسان له پکاردې چه په خپله دعاکښې خپل اولاد هم اومور پلار هم شامل کړي. بياهغوي د بتانو ګمراهي او د هغې فتنه اكثر خلقولره دهوګه كول دلته بيان كړل. د هغې نه د خپلې ويزارئ ځرګندونه اوكړه. او هغوي الله ﷻ ته حواله كړل چه كه غواړې نو اودې ښنې او كه غواړې نو سزا دې وركړې. لكه څنګه چه به روح الله ﷺ د قيامت په ورځ وائې كه ته دوى په عذاب كوې نوستا بنديګان دى اوكه ښنې نو ته عزيز او حكيم ئې. دا ياد ساتئ چه په دې كښې صرف د الله ﷻ د رضا اود هغه د ارادې طرف ته اشاره ده نه چه د هغې واقع كيدل جائز ګڼړل دى.

**رسول ﷺ دې ايتونو لوستلو سره امت دپاره ژړل:** حضور ﷺ د روح الله ﷺ دا قول او د خليل الله ﷺ دا قول ﴿اِنۡ تُعَذِّبۡهُمۡ﴾ الخ تلاوت كولو سره په ژړا ژړا كښې خپل امت يادكړونو الله ﷻ حضرت جبرائيل ﷺ ته حكم اوكړلو چه لاړشه معلومه كړه چه ولې ژاړې؟ هغوي ﷺ وجه بيان كړه نوحكم اوشو چه لاړشه او ورته اووايه چه تا به مونږ د خپل امت باره كښې خوشحاله كوو او خفه كووبه دې نه.(۱)

| مِنۡ ذُرِّيَّتِيۡ | اَسۡكَنۡتُ | اِنِّيٓ | رَبَّنَآ |
|---|---|---|---|
| اولاد خپل | ديره كړل ما | بيشكه | اې ربه زمونږ |
| اې زمونږ ربه ! بيشكه ما خپل اولاد ستا عزتمند كور | | | |

| الۡمُحَرَّمِ | عِنۡدَ بَيۡتِكَ | زَرۡعٍ | ذِيۡ | غَيۡرِ | بِوَادٍ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې محترم دې | خوا ته د كور ستا | د فصل | خاوند | چې نه دې | په داسې ميدان كښې |
| كعبې سره نزدې په بې اوبو او بې ګياه ميدان كښې ديره كړل .................. | | | | | |

| مِّنَ النَّاسِ | اَفۡـِٕدَةً | فَاجۡعَلۡ | الصَّلٰوةَ | لِيُقِيۡمُوا | رَبَّنَا |
|---|---|---|---|---|---|
| د خلقو | زړونه | نو اوګرځوه | مونځ | د پاره د دې چې قائم كړي | اې ربه زمونږ |
| پس د بعضو خلقو زړونه | | | | اې زمونږ ربه د دې د پاره چې دوئ مونځونه په پابندئ سره اوكړي | |

| لَعَلَّهُمۡ | مِّنَ الثَّمَرٰتِ | وَارۡزُقۡهُمۡ | اِلَيۡهِمۡ | تَهۡوِيٓ |
|---|---|---|---|---|
| د پاره د دې چې دوئ | د ميوو نه | او وركړه دوئ ته | دوئ ته | چې راغي په محبت سره |
| ..................چې ستا | | اودوئ ته ميوې وركړه | | د دوئ طرف ته مائله كړه |

| يَشۡكُرُوۡنَ ﴿۳۷﴾ |
|---|
| شكر اوباسي |
| شكر اداكړي |

**قوله تعالى:: وَارۡزُقۡهُمۡ مِّنَ الثَّمَرٰتِ**

**دابراهيم ﷺ دميوود زياتوالي دعا:** دا دونمه دعاده.اوله دعا د ښارد آبادئ نه اول كله چه هغوى حضرت اسماعيل ﷺ اودهغه مور بى بى دلته پريخودې وو اودا دعاد دې ښار د آباديدونه پس ده. دې دپاره

۱) صحيح مسلم كتاب الايمان باب دعاء النبي ﷺ لامته وبكائه شفقة عليهم:۲۰۲، ابن حبان:۷۲۳۴، السنن الكبرى:۱۱۲۶۹.

دلته ﴿عِنْدَ بَيْتِكَ الْمُحَرَّمِ﴾ لفظ راوړلو اود مونځ قائم کولو هم ذکر اوکړو. ابن جریر رحمه الله فرمائی دا متعلق دې لفظ ﴿الْمُحَرَّمِ﴾ سره یعنی دا نې دحرمت والا ځکه جوړکړو چه د دې ځائ والا په تسلئی سره مونځ اداکړی شي. دا نکته هم د یادولو قابله ده چه هغوی اوفرمائیل د څه خلقو زړه د هغوی طرف ته تیټ کړې که د ټولو خلقو د زړه د تیټیدلو دعا وه نود فارس روم یهود او نصاری غرض د ټولې دنیا خلق به دلته اولته پراته وو. هغوی صرف د مسلمانانودپاره دا دعا اوکړه اودعائی اوکړه چه هغوی ته میوې هم ورکړه. دا زمکه د زمیندارئی قابله هم نه ده اودعا د میوو د رزق کولې شي.

الله ﷻ دا دعا هم قبوله کړه لکه چه ارشاد دې ﴿أَوَلَمْ نُمَكِّن لَّهُمْ حَرَمًا آمِنًا يُجْبَىٰ إِلَيْهِ ثَمَرَاتُ كُلِّ شَيْءٍ رِّزْقًا مِّن لَّدُنَّا﴾ یعنی آیا مونږ هغوی ته د حرمت او امن والا ځائ نه دې ورکړې. دلته د هر څیز میوې د هغوی طرف ته راښکلې راځي چه خاص زمونږ د طرف نه رزق دې. نو دا د الله ﷻ خاص رحم وکرم او مهربانی ده چه د ښار پیداوار هیڅ هم نه دې او میوې دهر قسم هلته موجود دی داد حضرت ابراهیم خلیل الرحمن صلوات الله وسلامه علیه د دعا قبولیت دې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| رَبَّنَآ | إِنَّكَ | تَعْلَمُ | مَا نُخْفِيْ | | وَمَا |
| اے ربه زمونږ | بیشکه تهٔ | معلوم دی تاته | هغه چې پټوو ئې مونږ | | او هغه |
| ائې زمونږ ربه ! بیشکه څه چې مونږ پټوو او څه چې مونږ ښکاره کوو ټول هر څه تا | | | | | |
| نُعْلِنُ ؕ | وَمَا يَخْفٰى | عَلَى اللّٰهِ | مِنْ شَيْءٍ | فِي الْاَرْضِ | وَلَا |
| چې ښکاره کوو ئې مونږ | او نهٔ پټیږی | په الله باندې | هیڅ څیز | په زمکه کښې | او نهٔ |
| ته معلوم دی \| او د الله ﷻ نه په زمکه کښې او په اسمان کښې هیڅ څیز پټ نهٔ دې.................... | | | | | |
| فِي السَّمَآءِ ﴿٣٨﴾ | اَلْحَمْدُ | لِلّٰهِ | الَّذِيْ | وَهَبَ | لِيْ | عَلَى الْكِبَرِ |
| په اسمان کښې | ثنا ده | الله د پاره | هغه الله | چې رائې کړل | ماته | سره د بوډاوالی |
| ........................ \| ... ټول تعریفونه الله ﷻ د پاره دی \| چې ماته ئې په پیریٔ (بوډاتوب) کښې (دوه خامن) | | | | | | |
| اِسْمٰعِيْلَ | وَاِسْحٰقَ ؕ | اِنَّ | رَبِّيْ | لَسَمِيْعُ | الدُّعَآءِ ﴿٣٩﴾ | رَبِّ |
| اسماعیل | او اسحاق | بیشکه | رب زما | خامخا اوریدونکي | د دعا دې | ائې ربه زما |
| اسماعیل علیه السلام او اسحاق علیه السلام راکړل \| بیشکه زما رب دعاګانې اوری \| ....................ائې زما ربه | | | | | | |
| اجْعَلْنِيْ | مُقِيْمَ الصَّلٰوةِ | وَمِنْ ذُرِّيَّتِيْ ۖ | رَبَّنَا | وَتَقَبَّلْ | دُعَآءِ ﴿٤٠﴾ | |
| جوړ کړې ما \| قائیمونکي د مانځه | او زما د اولاد نه هم | ائې ربه زمونږ | او قبوله کړې | دعا زما | | |
| ما او زما اولاد هم دمونځ پابند جوړ کړه\|.................... ائې زمونږ ربه ! زما دعا قبوله کړه | | | | | | |
| رَبَّنَا | اغْفِرْ | لِيْ | وَلِوَالِدَيَّ | وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ | يَوْمَ | |
| ائې ربه زمونږ | ښنه اوکړې | ماته | او مور او پلار زماته | او مومنانو ته | په هغه ورځ | |
| ائې زمونږ ربه ! ما او زما مور پلار اوټول مؤمنان په هغه ورځ اوبښه \| په کومه ورځ چې به | | | | | | |
| يَقُوْمُ الْحِسَابُ ﴿٤١﴾ ع | | | | | | |
| چې قائمیږی حساب | | | | | | |
| حساب کتاب کیږی | | | | | | |

**قوله تعالی:: رَبِّ اجْعَلْنِيْ مُقِيْمَ الصَّلٰوةِ**

**دحضرت ابراهيم ﷺ یوه بله دعا.** د الله ﷻ خلیل ﷺ په خپله دعا کښې فرمائي چه الله ﷻ خو زما ارادې اومقصود زمانه ښه پیژني. زما خوښه ده چه دلته اوسیدونکي ستا د رضا طالب او صرف هم ستا طرف ته راغب وي. ظاهراو باطن خوتاته معلوم دی. د زمکې اوآسمان هر څیز تاته ښکاره دې. ستا احسان دې چه په دې بوډاوالي کښې تاماله اولاد راکړو او یو پسې دې بل بچې راکړو اسماعیل ﷺ او اسحاق ﷺ هم. ته د دعاګانو اوریدونکې او قبلونکې ئې. ما اوغوښتل او تا راکړه. نو ستا شکر دې یا الله ته ما د مونځونو پابند جوړکړه اوزما اولاد کښې هم دا سلسله روانه اوساتې. زما ټولې دعاګانې قبولې کړه. د﴿وَلِوَالِدَيَّ﴾ قراءت بعضو﴿وَلِوَالِدِيْ﴾ هم کړې دې په صیغه د مفرد سره. دا یاد ساته چه دا دعا د دې نه وړاندې ده.چه هغوی ته د الله ﷻ د طرف نه معلومه شوه چه ستا پلار د الله ﷻ په دښمنئ باندې مړشوې دې. نوچه کله دا ښکاره شوه نو هغوی د خپل پلار نه ویزاره شو. نو دلته هغوی د خپل مور پلار او ټولو مؤمنانو د خطاګانو معافی د الله ﷻ نه غواړي چه د اعمالو د حساب او بدلې په ورځ دې خطاګانې معاف وي.

| وَلَا تَحْسَبَنَّ اللّٰهَ غَافِلًا عَمَّا يَعْمَلُ |
|---|
| او ته مه کوه ګمان \| په الله باندې \| چې غافله دې \| د هغه کارونو نه \| چې کوی ئې |
| ........اوته په الله باندې دا ګمان مه کوه \| چې ګنی هغه د ظالمانو |
| الظّٰلِمُوْنَ ۚ اِنَّمَا يُؤَخِّرُهُمْ لِيَوْمٍ تَشْخَصُ فِيْهِ |
| ظالمان \| بیشکه \| چې الله روستو کوی دوی \| هغه ورځ ته \| چې غړ يدلې به پاتې شی \| په هغې کښې |
| دکارونو نه غافله دې \| هغوی ته ئې خو تر هغې ورځې پورې مهلت ورکړې دې \| چې په کومه ورځ به |
| الْاَبْصَارُ ۙ مُهْطِعِيْنَ مُقْنِعِيْ رُءُوْسِهِمْ لَا يَرْتَدُّ |
| سترګې \| چې منډې وهونکې به وی \| اوچت نیونکې به وی \| د سرونو خپلو \| واپس به نه راګرځی |
| ئې سترګې غړیدلې پاتې شی \| هغوی به خپل سرونه اوچت کړی منډې وهی \| د هغوی |
| اِلَيْهِمْ طَرْفُهُمْ ۚ وَاَفْـِٕدَتُهُمْ هَوَآءٌ ۭ |
| دوی ته \| سترګې د دوی \| او زړونه د دوی به \| الوتلې وی \| |
| نظرونه به دهغوی طرفته نه واپس کیږی \| او زړونه به ئې الوتې وی \| |

**قوله تعالی:: وَلَا تَحْسَبَنَّ اللّٰهَ غَافِلًا**

**د الله ﷻ ورکړې شوی مهلت نه ناجائزه فائده مه اوچته وه:-** څوك دې دا نه ګڼړی چه د بدئی کونکو د بدو الله ﷻ ته هډو علم نشته څکه دوی په دې دنیاکښې خوشحاله او آباد دی. نه الله ﷻ د یویو کس د یوې یوې ګهړئی د ښو اوبدو اعمالونه ښه خبر دې. دا مهلت پخپله د هغه ورکړې شوې دې چه یا خو به هغه واپس شی یا به په ګناهونوکښې نور هم زیات شی تر هغه وخته پورې چه د قیامت ورځ راشی د کومې ورځې تباهئی چه به سترګې بڼې راوباسی او روحې به اوچتې اوخیژی. اوچت سر د آواز کونکی آواز پسې به منډې وهی. چرته به اخواديخوا نه کیږی. ټول به ډیر اطاعت کونکی جوړ شی. په منډو منډو به د الله ﷻ حضورته د حاضرئی د پاره بې واره راځی. نه به د ویرې نه او فکر نه سترګې لاندې تیټولې شی اونه به سترګې رپولې شی.د زړونو به داحال وی لکه الوزی خالی پراته دی دویرې نه علاوه

بل هیڅ څیز نشته هغه به ګرګس (سینه) ته رسیدلې وی د خپل ځای نه اخوا شوی دی اود دهشت او ویرې نه خراب شوی دی.

| |
|---|
| وَأَنذِرِ النَّاسَ يَوْمَ |
| او اوویروه \| خلق \| د هغه ورځې نه |
| اوواني محبوبه ﷺ خلق دهغې ورځې |
| يَأْتِيهِمُ الْعَذَابُ فَيَقُولُ الَّذِينَ ظَلَمُوا رَبَّنَا |
| چې رابه شي هغوئ ته \| عذاب \| نو اوبه واني \| هغه کسان \| چې ظلم ئې کړې وی \| ائې ربه زمونږ |
| نه اوویروه \| په کومه کښې چې به په هغوئ عذاب راشي \| نو ظالمان خلق به اووائی \| چې ائې زمونږ ربه |
| أَخِّرْنَا إِلَىٰ أَجَلٍ قَرِيبٍ نُّجِبْ دَعْوَتَكَ وَنَتَّبِعِ الرُّسُلَ |
| روستو کړې مونږ \| نیتې نزدې ته \| قبول به کړو مونږ \| دعوت ستا \| او پیروی به اوکړو \| د رسولانو |
| مونږ ته لږ مهلت راکړه \| چې مونږ ستا دعوت قبول کړو \| اود پیغمبرانو تابعداری اوکړو |
| أَوَلَمْ تَكُونُوا أَقْسَمْتُم مِّن قَبْلُ مَا لَكُم مِّن زَوَالٍ |
| ایا نه وئ تاسو \| چې قسمونه به خوړل تاسو \| د مخکښې نه \| چې نشته تاسو لره \| څه زوال \| |
| (مونږ به ورته اووایو) ایا تاسو نه وئ چې د دې نه وړاندې به مو قسمونه خوړل \| چې مونږ د پاره زوال نشته |
| وَسَكَنتُمْ فِي مَسَاكِنِ الَّذِينَ ظَلَمُوا |
| حالانکه اوسیدلی وئ تاسو \| په کورونو د هغه کسانو کښې \| چې هغوئ ظلم کړې وو |
| حال دا چې تاسو د هغه چا په ځایونو کښې اوسیدلې وئ چې په ځانونو ئې (د ګناهونو په وجه) زیاتي |
| أَنفُسَهُمْ وَتَبَيَّنَ لَكُمْ كَيْفَ فَعَلْنَا بِهِمْ |
| په ځانونو خپلو باندې \| او ښکاره شوې وه \| تاسو ته \| چې څرنګې \| اوکړو سلوک مونږ \| د هغوئ سره |
| کړې وو \| اوښه ښکاره درته معلومه وه \| چې هغوئ سره مونږ څه کړی وو ...................... |
| وَضَرَبْنَا لَكُمُ الْأَمْثَالَ ۝ وَقَدْ مَكَرُوا مَكْرَهُمْ وَعِندَ اللَّهِ |
| او بیان کړی وو مونږ \| تاسو ته \| مثالونه \| او اوکړل هغوئ \| تدبیرونه خپل \| او د الله سره دي |
| او د هغوئ مثالونه مو درته اورولی وو \| اودوئ خپل ټول سازشونه اوکړل \| او د دوئ د سازشونو جواب |
| مَكْرُهُمْ وَإِن كَانَ مَكْرُهُمْ لِتَزُولَ مِنْهُ الْجِبَالُ ۝ |
| (جواب د) مکرد هغوئ \| او اګر چې وو \| مکر د هغوئ (داسې) \| چې اوخوزیږی \| د وجې د هغې نه غرونه |
| الله ﷻ سره موجود وو \| اګر که ددوئ سازشونه داسې زبردست سازشونه وو اچې غرونه هم ورته دښینګې نه وو |

قوله تعالی:: أَوَلَمْ تَكُونُوا أَقْسَمْتُم

دقیامت په ورځ دنیاته واپس تلل نامنظور: ظالمان اوبې انصافه خلق چه دالله ﷻ عذاب اووینی نو ارزو ګانې به کوی دعاګانې به غواړی چه مونږته لږشان مهلت ملاوشی چه مونږ حکم اومنواود پیغمبرانو تابعداری هم اوکړو. او په آیت کښې دی چه مرګ اووینی نو وائی ﴿رَبِّ ارْجِعُونِ﴾ یاالله اوس مو واپس

کړه الخ. همدغه مضمون په آيت ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُلْهِكُمْ أَمْوَالُكُمْ وَلَا أَوْلَادُكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللَّهِ﴾ الخ کښې دې. يعنې اې مسلمانانو تاسو دې ستاسو مال اولاد دالله ﷻ د ياد نه غافله نه کړي. داسې کونکې خلق په ښکاره تاوان کښې دی. زمونږ ورکړې شوی زمونږ په لارکښې ورکونې. داسې نه چه د مرګ په وخت کښې ارزو کونې چه ماته دې د لږشان وخت مهلت ملاوشي. نو زه به خيرات اوکړم او په نيکانو کښې به شامل شم. يادساتنې د اجل راتلونه پس چاته مهلت نه ملاويږي. او الله ﷻ ستاسو د اعمالو نه خبر دې.

په محشرکښې به هم د دوی دا حال وی. د سورة سجده آيت ﴿وَلَوْ تَرَىٰ إِذِ الْمُجْرِمُونَ﴾ کښې دی چه کاش که تا ګناهګاران اوليدل چه هغوی د پروردګار په وړاندې به سرونه ټيټ کړې شوی وانې اې زمونږه ربه مو اوليدل مونږ واوريدل ته مونږه يو ځل دنيا ته اوليږه نو مونږ به د يقين والاشو او نيك عملونه به اوکړو.

هم دا بيان په آيت ﴿وَلَوْ تَرَىٰ إِذْ وُقِفُوا عَلَى النَّارِ﴾ او آيت ﴿وَهُمْ يَصْطَرِخُونَ فِيهَا﴾ وغيره کښې هم دې. دلته هغوی ته جواب ملاويږی چه تاسو خو د دې نه اول قسمونه خوړلو سره وئيلی وو چه ستا نعمتونو ته هډو زوال نشته او قيامت خو هيڅ څيز نه دې مړه کيدلو نه پس خو اوچتيدل هډوشته نه اوس د دې مزه واخلئ تاسو څه وئيل او ښه کلك قسمونه به مو خوړل او نورو ته به مو يقين ورکولو چه مړی به الله ﷻ دوباره نه ژوندی کوی.بيا فرمائی چه تاسو پخپله اوليدل او واوريدل چه تاسو نه اول ستاسو په شان خلقو سره مونږ څه اوکړل. د هغوی مثالونه مونږ تاسو ته هم بيان کړی دی چه زمونږ په عذابونو هغوی څنګه غرق کړې شو. سره د دې نه تاسو د هغوی نه عبرت نه حاصلوئې او بيدار کيږئی نه، نو تاسو څومره چالاك ئې خو ښکاره خبره ده چه الله ﷻ سره څوك چالاکی نه شی کولې.

**د نمروديوه قصه**::حضرت ابراهيم ﷺ سره چه چا جګړه کړې وه هغه د ګده (مرداره خوړونکې يو الوتونکې څيز دې) دوه بچی ساتلې وو.کله چه هغه لوئ شو اوخوانان شو او طاقت او قوت والا شو نود يو وړوکی چوکئی يوې خپې پورې ئی يو اوتړلو د دونمې خپې سره ئی بل اوتړلو. د هغوی د خوراك د پاره ئی هيڅ نه ورکول او پخپله سره د ملګری په دې چوکئی کيناستل اود يو لرګی سرپورې غوښه اوتړله او اوچته ئی کړه. نهر ګده هغه د خوړلو د پاره اوچت والوتلو او خپل زور سره ئی چوکئی هم اوچته کړه. اوس چه دې دومره اوچتوالی ته اورسيدو چه هريوڅيز دوی ته د مچ په شان ښکاره شو نو هغوی لرګې ښکته کړو نو دې وخت کښې غوښه لاندې ښکاريده په دې وجه څناور خپلې وزرې راغونډې کړې او د غوښې حاصلولو د پاره لاندې کوزيدل شروع کړل او دا چوکئی هم لاندې کيدل شروع شو. تر دې چه زمکې ته اورسيدل نو دا دی هغه مکارئی دکومو سره چه د غرونو زوال هم ممکن شان شی.دعبدالله ﷺ په قراءت کښې ﴿وَإِنْ كَانَ مَكْرُهُمْ﴾ دې. حضرت علی ﷺ حضرت ابی بن کعب ﷺ او حضرت عمر ﷺ قراءت هم دغه دې. دا قصه د نمرود ده چه د کنعان بادشاه وو هغه په دی بهانه باندې د آسمان قبضه غوښتې وه. د هغه نه پس د قبطيانو بادشاه فرعون هم دا چل کولو. ډيره لويه او اوچته مناره ئی جوړه کړې وه خو د دوارو کمزوری ضعيفی او عاجزی ښکاره شوه او د ذلت خوارئی ښکته کيدلو او تنزل سره حقير او ذليل شو. وائی چه کله بخت نصر په دې حيله باندې خپل تخت ډير اوچت بوتلو تردې چه زمکه او دزمکې اوسيدونکی دهغه د سترګونه غائب شونوهغه له يو قدرتی آواز راغلو چه اې سرکشه او باغی څه اراده لرې؟ دې اوويريدو لږ ساعت پس دا غيبی آواز بيا راغلو اوس خو د هغه څيګر اوبه شو او زر ئی نيزه ښکته کړه او لاندې ئی کوزيدل شروع کړه. دحضرت مجاهد په قراءت کښې ﴿لِتَزُولَ﴾ دې بدله کښې د ﴿لِتَزُولَ﴾ ابن عباس ﷺ دا نافيه منی يعنی د هغوی مکر غرونه نه شی زائل کولې.حسن بصری ﷫ هم دا وائی.دابن جرير ﷫ توجيه دابيان فرمائی چه دهغوی شرك او کفر غرونه نه شی اخواکولې هيڅ ضرر نه شی ورکولې صرف هم د هغوی وبال د هغوی په خانونو دی.

زه وايم چه هم ددې په شان د الله ﷻ دا فرمان هم دې ﴿وَلَا تَمْشِ فِي الْأَرْضِ مَرَحًا ۖ إِنَّكَ لَنْ تَخْرِقَ الْأَرْضَ وَلَنْ تَبْلُغَ الْجِبَالَ

ظُلُوْلا) په زمکه دکبرژنو په شان مه ګرځه نه خو ته زمکه څیرلی شې نه دغرونواوچتوالی ته رسیدې شې.دابن عباس رضي الله عنه دوئم قول دادې چه دهغوی شرك غرونه زائل کونکې دې لکه چه دالله ﷻ ارشاد دې ﴿تَكَادُ السَّمٰوٰتُ يَتَفَطَّرْنَ مِنْهُ﴾دې سره خودآسمانونوشلیدل ممکن دی.دضحاك رحمه الله اوقتاده رحمه الله هم دغه قول دې

| فَلَا تَحْسَبَنَّ | اللّٰهَ | مُخْلِفَ | وَعْدِهٖ | رُسُلَهٗ ؕ | اِنَّ اللّٰهَ | عَزِيْزٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| پس نه ګمان مه کوه | په الله باندې | خلاف کونکې | د وعدې خپلې | د رسولانو خپلو سره | بیشکه الله | غالب دې |
| نو دا ګمان هیڅرې مه کوه | چې الله ﷻ به خپلو پیغمبرانو سره وعده خلافی اوکړی | | | | بیشکه الله ﷻ | غالب |

| ذُوانْتِقَامٍ ۝ | يَوْمَ | تُبَدَّلُ | الْاَرْضُ | غَيْرَ الْاَرْضِ |
|---|---|---|---|---|
| بدله اخستونکې دې | (اوویروه دوی)د هغه ورځ نه | چې بدل به کړې شي | دا زمکه | په بلې زمکې سره |
| بدله اخستونکې دې | (دوئ دهغې ورځې نه)اوویروه | په کومه ورځ چې به دا زمکه په بله زمکه بدله شی | | |

| وَالسَّمٰوٰتُ | وَبَرَزُوْا | لِلّٰهِ | الْوَاحِدِ | الْقَهَّارِ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| او اسمانونه هم | او حاضر به شی | الله ته | چې یو دې | غالب دې | اوته به اووینې |
| اواسمانونه (به بې نوره شي) | اودوئ ټول به غالب الله ﷻ ته ورمخامخ شی | | | اوته به اووینې |

**قوله تعالى:: يَوْمَ تُبَدَّلُ الْاَرْضُ غَيْرَ الْاَرْضِ**

**دقیامت په ورځ به زمکه او آسمانونه بدلولې شي:** الله ﷻ خپله وعده مقرر او موکد کوی چه په دنیا او آخرت کښې چه هغه د خپلو رسولانو سره کومه وعده کړې ده هغه هیڅ کله هم د هغې خلاف کونکې نه دې. په هغه باندې بل هیڅ څوك غالب نشته هغه په ټولو غالب دې. د هغه د ارادې مراد جدانه دې هغه چه څه اوغوښتل بس هم هغه کیږی. هغه به د کافرانونه د هغوی د ظلم بدله خامخا اخلی. د قیامت په ورځ به په هغوی حسرت ناامیدی او ارمان پروت وی. په هغه ورځ به زمکه وی خو د دې نه علاوه بله به وی. دغه شان به آسمان هم بدل کړې شی. په بخاری شریف او مسلم شریف کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی په یو داسې سپینه او صفازمکه باندې حشر کولې شئی لکه چه د میدې سپینې ټیکنې وی او په هغې باندې هیڅ نښه او ښکته پورته نه وی([1])مسنداحمد کښې روایت دې حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی د ټولو نه مخکښې هم ما درسول الله ﷺ نه د دې آیت باره کښې د سوال تپوس کړې وو چه هغه وخت به خلق کوم ځائې وی؟ حضور ﷺ اوفرمائیل په پل صراط باندې.([2]) یوبل روایت کښې دی چه حضور ﷺداهم اوفرمائیل چه تا د هغې خبرې تپوس اوکړوچه زما په امت کښې ددغه خبرې چا تپوس نه دې کړې([3])او په بل روایت کښې دی چه داسوال دمور بی بی رضي الله عنها ددې آیت ﴿وَالْاَرْضُ جَمِيْعًا قَبْضَتُهٗ﴾ متعلق وو اوهغوی ﷺ هم دغه جواب ورکړې وو.([4])

**دیهودی عالم سوالونه اودهغې جوابونه:** ثوبان رضي الله عنه فرمائی چه زه رسول الله ﷺ سره ووم یو یهودی عالم راغلو او هغه د رسول الله ﷺ نوم واخستو او سلام علیك نې اووئیل. ما هغه له دومره په زوره دیکه ورکړه چه نزدې وه چه راپریوتلې وې. هغه ماته اووئیل چه تا ماله ولې دیکه راکړه. ما هغه ته اووئیل چه بې ادبه یارسول الله نه وائې او د هغه نوم اخلې. هغه اووئیلې چه مونږه خو کوم نوم د هغه اود هغه د

[1] صحيح بخارى كتاب الرقاق باب يقبض الله الارض يوم القيامة: ٦٥٢١، صحيح مسلم: ٢٧٩٠، ابن حبان: ٧٣٢٠.
[2] احمد: ٣٥/٦، صحيح مسلم كتاب صفات المنافقين، باب فى البعث والنشور: ٢٧٩١ترمذى: ٣١٢١، ابن ماجه: ٤٢٧٩، ابن حبان: ٧٣٨٠.
[3] احمد: ١٠١/٦، صحيح مسلم: ٢٧٩١.
[4] احمد: ١١٧/٦، ترمذى كتاب تفسير القرآن باب ومن سورة الزمر: ٣٢٤١.

خاندان والا د خلقو ایخودې دې هم په هغه نوم باندې به نی رابلو.حضورﷺ اوفرمائیل زما خندان خوزما نوم هم محمد(ﷺ) ایخودې دې. یهودی ونیلې چه واوره زه تانه یوه خبره معلوموله راغلې یم. حضورﷺ اوفرمائیل چه بیا به زما جواب تاله څه نفع هم درکړی؟ هغه اوونیل چه واخویه نی اورم د نبی ﷺ په لاس کښې چه کوم ډکې ووار هغه په زمکه باندې ګرخولو سره اوفرمائیل چه ښه ده معلومه کړه. هغه ونیل چه کله زمکه او آسمان بدل کړې شی نو هغه وخت به خلق کوم خائ وی؟ ونی فرمائیل پل صراط سره په تیاروکښې هغه تپوس اوکړو چه د ټولونه اول به په پل صراط باندې کوم خلق تیریږی؟ هغوی ﷺاوفرمائیل چه مهاجرین او فقیران نو هغه تپوس اوکړو چه هغوی ته به د ټولونه مخکښې کومه تحفه ملاویږی؟ هغویﷺ اوفرمائیل چه د کب د اینې زیاتی. هغه تپوس اوکړو چه دې نه پس به هغوی ته کوم خوراك ملاویږی؟ هغویﷺ اوفرمائیل چه جنتی غوینې به حلالولې شی کوم چه د جنت په اطرافوکښې څرن کوی. هغه بیا تپوس اوکړو چه د څکلو د پاره به څه ملاویږی؟ هغویﷺ اوفرمائیل د جنت د نهر سلسبیل اوبه. یهودی اوونیل ستا ټول جوابونه په حقه دی. ښه ده زه اوس دیوی بلې خبرې تپوس کوم چه هغه خو یا نبی پیژنی او یا د دنیا یو دوه کسان نو حضورﷺ اوفرمائیل چه تاله به زما جواب څه نفع درکړی؟ هغه ونیل واوخوره. د بچی باره کښې ته څه فرمائې؟ حضورﷺ اوفرمائیل چه د سړی خاص اوبه د سپین رنګ وی او د ښځې خاص اوبه دزیړ رنګ وی کله چه دا دواړه جمع کیږی نو که د سړی اوبه غالب راشی نود الله په حکم سره هلك پیداکیږی او که د ښځې اوبه غالب راشی نو د الله ﷻ په حکم جینئی پیدا کیږی. یهودی اوونیل چه بې شکه ته رښتونې نی او د الله ﷻ پیغمبر نې. بیا واپس لاړو نو هغه وخت حضورﷺ اوفرمائیل هغه چه کله مانه سوال اوکړو نو ماته یو جواب هم معلوم نه ووخو هغه وخت ماته الله ﷻجواب اوخودل(مسنداحمد)[1]په ابن جریرطبری کښې دی چه دیهودی عالم د رومبی سوال په جواب کښې حضورﷺ اوفرمائیل هغه وخت به مخلوق د الله ﷻ په میلمستیاکښې وی. نو چه هغوی سره کوم څیزونه دی د هغې نه به عاجزه نه وی. عمروبن میمون رحمه الله فرمائی چه دا زمکه به بدله کړې شی او زمکه به د سپینې میدې د ټکنی غوندې وی په کومه کښې چه به هیڅ وینه بهیدل نه وی او نه به څه ګناه وی، سترګې به تیزې وی د داعی آواز به په غوږونوکښې وی ټول به بربنډې پښې او بربنډ بدنونه ولاړ وی تردې چه خوله به د واګو په شان شی. د حضرت ابن مسعودؓ نه هم داسې روایت دې.([2])

**دقیامت د زمکې کیفیت**:.په یو مرفوع روایت کښې دی چه د سپین رنګ به هغه زمکه وی چه په هغې به د وینې هیڅ څاڅکې نه وی پریوتلې اونه به په هغې څه د ګناه عمل شوې وی. ([3])دا مرفوع کونکې صرف یو راوی دې یعنی جریربن ایوب رحمه الله اوهغه قوی نه دې. په ابن جریرکښې دی چه حضور ﷺ یهودیانوله خپل سړې اولیږه بیا نی د صحابه کرامو رضی الله عنهم نه تپوس اوکړو چه ما خپل سړې ولې یهودیانوله اولیږلو هغوی عرض اوکړوچه الله ﷻ خبردې یا دهغه رسولﷺ.هغوی آیت اوفرمائیل ﴿ یَوْمَ تُبَدَّلُ الْاَرْضُ غَيْرَ الْاَرْضِ وَالسَّمٰوٰتُ وَبَرَزُوْا لِلّٰهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ ﴾باره کښې یاد اوساتئی چه هغه به په هغه ورځ لکه د چاندئی په شان سپینه وی([4])کله چه هغه خلق راغله نو هغوی تپوس اوکړو نو هغوی ونیل سپینه به وی لکه میده. د نورو سلفونه روایت دې چه د چاندئی زمکه به وی حضرت علیؓ فرمائی چه آسمان به د سرو زرو وی. ابیؓ فرمائی چه هغه به باغونه شوی وی. محمد بن قیس رحمه الله وائی روټئی به جوړه شوې

---

[1]) صحیح مسلم کتاب الحیض باب بیان صفة منی الرجل والمرأة:۳۱۵، ابن حبان:۷۴۲۲.

[2]) حاکم:۵۷۰/۴.

[3]) البزار:۳۴۳۱، طبرانی:۱۰۳۳۳، مجمع الزوائد:۴۵/۷.

[4]) الطبری:۲۵۰/۱۳.

وی چه مؤمنان به د هغوی د خپو د لاندې اوخوري. سعيد بن جبير ﷺ هم دغه فرمائي چه زمکه به بدله شي او روښنې به جوړه شي. عبدالله بن مسعود﷛ فرمائي چه د قيامت په ورځ به ټوله زمکه د اور شي د دې شاته به جنت وی چه د هغې نعمتونه به د بهر نه ښکاري. خلق به په خپلو خولوکښې ډوب وی او دې وخت کښې به حساب کتاب نه وی شروع شوی. د انسان خولې خو به اول په قدمونوکښې وی بيا به زياتې شي او تربوزې پورې به اورسی په وجه د هغه سختئ ويرونکي او خطرناك نظارې چه د هغوی د سترګو په وړاندې وی. کعب ﷛ وائي چه زمکه به باغونه جوړ شي او سمندر به اور جوړشي. زمکه به بدله کړې شي. د ابوداؤد په حديث شريف کښې دی چه د سمندر سفر دې غازي يا حاجي يا عمره کونکې کوی ځکه چه دسمندر لاندې اوردې ياد اور لاندې سمندر دې[1]دصور په مشهور حديث کښې دي چه الله ﷻ به زمکه راغونډه کړی اود عقاظی څرمن په شان به ني راکاږی، په هغې کښې به هيڅ لوړه ژوره نه ښکاري. بيا به هم په يو آواز سره ټول مخلوق په زمکه راخور شي.[2] بياارشاد دې چه ټول مخلوق به د قبرونونه راوځي او د الله واحد قهار په وړاندې به مخامخ شي. هغه الله چه يوازې دې او څوك چه په هرڅيز باندې غالب دې د ټولو ستونه به د هغه په وړاندې ټيټ وی او ټول به د هغه حکم تابعدار وی.

| سَرَابِيۡلُهُمۡ | فِي الۡاَصۡفَادِ | مُّقَرَّنِيۡنَ | يَوۡمَئِذٍ | وَتَرَى الۡمُجۡرِمِيۡنَ |
|---|---|---|---|---|
| قميصونه د هغوی به | په زنځيرونو کښې | چې تړلي شوي به وي | په دغه ورځ | اوته به اووينې مجرمان |
| دهغوی قميصونه | | په زنځيرونو تړلي وي | په يوبل پورې | اوته به اووينې چې نافرمان به په دغه ورځ |
| لِيَجۡزِيَ اللّٰهُ | النَّارُ | وُجُوۡهَهُمُ | وَتَغۡشٰى | مِّنۡ قَطِرَانٍ |
| دپاره ددې چې بدله ورکړي الله | وور | په مخونو د هغوی باندې | او راخور به وی | دګوګړو وی |
| دا د دې د پاره چې الله ﷻ هر | راخوره وی | په مخونو به ئې د اور (لمبه) | | به ګوګړو نه جوړ وی او |
| | سَرِيۡعُ الۡحِسَابِ | اِنَّ اللّٰهَ | مَّا كَسَبَتۡ | كُلَّ نَفۡسٍ |
| | زراخستونکی دی د حساب | بيشکه الله | د هغه عمل چې کړي ئې وی | هر انسان ته |
| | دير زر حساب اخستونکي دې | بيشکه الله ﷻ | دخپل عمل بدله ورکړي | نفس ته |

**قوله تعالى:: سَرَابِيۡلُهُمۡ مِّنۡ قَطِرَانٍ**

**دوزخيان به دګوګړو په جامو کښې قيد وی.** زمکه او آسمان بدل شوی دې مخلوق دالله ﷻ په وړاندې ولاړدې په هغه ورځ به اې نبی ته ګورې چه کفر اوفساد کونکی ګناهګاران پخپل مينځ کښې رانخلولی تړلي ولاړ وی اودهرقسم ګناهګاران به يوبل سره يوځای ولاړ وی. لکه چه ارشاد دې (اُحۡشُرُوا الَّذِيۡنَ ظَلَمُوۡا وَاَزۡوَاجَهُمۡ) ظالمان او دهغوی د جوړ خلق رايوځای کړئ. او په آيت کښې دی ( وَاِذَا النُّفُوۡسُ زُوِّجَتۡ ) يعنی د نفس جوړې به رايوځای کړې شي. او بل ځای کښې ارشاد دې( وَاِذَاۤ اُلۡقُوۡا مِنۡهَا مَكَانًا ضَيِّقًا مُّقَرَّنِيۡنَ دَعَوۡا هُنَالِكَ ثُبُوۡرًا )يعنی هغوی به د دوزخ په تنګو کوروںو کښې يوځای سوزولې اچولې شی نو هلته به مرګ مرګ چغې وهی.دسليمان ﷺدپيريانو متعلق هم[مُقَرَّنِيۡنَ فِي الۡاَصۡفَادِ]الفظ دې اصفادوائی دقيد زنځيرونوته. دعمرو بن کلثوم په شعرونوکښې مصفد په معنی زنځيرونوکښې تړلی شوی قيديان راغلی دی.هغوی ته چه کومې کپړې اچولې شی هغه به د ګوګړو وی کوم چه په اوښانو لګولې شی دا اور په تيزئ اوسرعت سره لګی.دالفظ (قِطۡرَانٍ) هم دې ( قَطِرَانٍ) هم دې. ابن عباس ﷛ فرمائي ويلی شوی تانبې ته

[1]) ابوداؤد كتاب الجهاد باب في ركوع البحر في الغزو:٢٤٨٩، بيهقي:٣٣٤/٤التاريخ الكبيررقم:١٨٤٦، التقريب:١٠٢/١-١٠٣.
[2]) الطبري:٢٥٢/١٣.

قطران واني د هغه سخت ګرم اور په شان د تانبې به د دوزخیانو جامې وي د هغوی مخونه به هم په اور کښې پټ شوي وي. د مخونو پورې به نی اور ورختلې وي د سرونونه به نی شغلې اوچتیږی. مخونه به نی اوران شوي وي.

دې امت کښې دجاهلیت څلور کارونه:: په مسند احمد کښې دي رسول الله ﷺ فرماني زما په امت کښې څلورکارونه د جاهلیت دي چه د هغوی نه به لاړ نه شي. ❶په حسب باندې فخر❷په نسب کښې پیغورونه ❸د ستورونه د بارانونوغوښتنه❹ په مړي ژاړه. واوړنی که ژړا کونکې ښځې د خپل مرګ نه وړاندې توبه اونه کړه نو هغې ته به د قیامت په ورځ ګوګړو قمیص او او ازغنه لوپټه اچولې شي.(۱) په مسلم شریف کښې هم دا حدیث دي(۲)او په روایت کښې دي چه هغه به د جنت او دوزخ په مینځ کښې اودرولې شي.د ګوګړو جامې به نی وي او په مخ باندې به نی اور لوبې کوی. (۳)د قیامت په ورځ به الله ﷻ دهر یود کارونو بدله ورکوی.دبدانو بدنی به مخامخ راشي.الله ﷻ به ډیر زر د ټول مخلوق د حساب کتاب نه فارغ شي. ممکن دی چه دا آیت هم په شان د آیت ﴿اقْتَرَبَ لِلنَّاسِ حِسَابُهُمْ وَهُمْ فِي غَفْلَةٍ مُّعْرِضُونَ﴾ وی یعنی د خلقو د حساب وخت نزدې راغلو ولې بیا هم هغوی د غفلت سره مخ اړولې دی او ممکن دی چه دا د بنده د حساب د وخت بیان وی یعنی ډیر زر به حساب اوشي. خکه چه هغه د ټولو خبرو نه خبردار دې د هغه نه یوه خبره هم پټه نه ده لکه څنګه د یوملك ټول خلق. ارشاد دې ﴿مَا خَلْقُكُمْ وَلَا بَعْثُكُمْ إِلَّا كَنَفْسٍ وَاحِدَةٍ﴾ ستاسو د ټولو پیدا کول او بیا د مرګ نه پس راژوندی کول ماته داسې دی لکه یو کس وژل او سوزول. هم دغه معنی د مجاهد ﷬ د قول هم ده. چه د حساب په احاطه کښې الله ﷻ ډیر تندې کونکې دی او دا هم کیدې شي چه هم دواړه معنې مراد وی یعنی د حساب وخت هم نیزدې او الله ﷻ ته په حساب کښې وخت هم نه لګي یوخوا شروع شو او بل خوا ختم شو. والله اعلم.

| هٰذَا بَلٰغٌ | لِّلنَّاسِ | وَلِيُنْذَرُوْا | بِهٖ | وَلِيَعْلَمُوْا |
|---|---|---|---|---|
| دا قران پیغام دی | دپاره دخلقو | او چې اوویرولې شی دا خلق | په دې سره | او چې معلوم شي خلقو ته |
| دا(قران پاک) دخلقو دپاره یو لوئې پیغام دې | | او چې د دې په ذریعه هغوئ اوویرولې شي | | اوچې پوهه شي |
| اَنَّمَا | هُوَ | اِلٰهٌ | وَّاحِدٌ | وَّلِيَذَّكَّرَ اُولُوا الْاَلْبَابِ |
| چې بیشکه | هم هغهٔ (الله) | لائق د عبادت دې | یو | او چې نصیحت قبول کړی خاوندان دعقلونو |
| چې په حقیقت کښې الله ﷻ صرف څان له د عبادت مستحق دې | | | | او چې پوهان ترې سبق واخلي |

قوله تعالى:: هٰذَا بَلٰغٌ لِّلنَّاسِ

قرآن د دنیا په وړاندې یو ښکاره پیغام: ارشاد دې چه داقرآن د الله ﷻ د طرف نه دنیا ته یو کولاؤ پیغام دې لکه څنګه چه په بل آیت کښې د نبی کریم ﷺ په ژبه مبارکه ارشاد دې﴿لِأُنذِرَكُم بِهِ وَمَن بَلَغَ﴾یعنی چه زه په دې قرآن سره تاسو هوښیار کړم. اوچه څنګه دا اورسی ټولو انسانانو او ټولو پیریانوته لکه څنګه چه د دې سورة په شروع کښې فرمائیلې دی چه دا کتاب مونږ هم ستا طرف ته نازل کړې دې چه ته خلق د تیارونه راوباسې او رڼرا طرف ته نی راولې الخ. د دې قرآن کریم غرض دا دې چه خلق هوښیار کړې شي اوویرولې شي اود دې دلیلونه او حجتونه اووینې اولوستلو سره د تحقیق نه معلومه کړی چه الله ﷻ یوازې دې د هغه څوك شریك نشته اوعقلمند خلق نصیحت عبرت اووعظ اوینډ حاصل کړی. سوچ او پوهه شئی.

## الحمدلله دسورة ابراهیم تفسیرختم شو.

---

(۱) احمد:۵/۳۴۲-۳۴۳وهوحديث صحيح، ابن حبان:۳۱۴۳، بیهقي:۴/۶۳.

(۲) صحيح مسلم كتاب الجنائز باب التشديد في النياحة: ۹۳۴.

(۳) طبراني:۶/۲۳۸، مجمع الزوائد:۳/۱۴.